# د پښتو تاریخ

— مؤرخ —

قاضي عطاء الله خان

یونیورسټي بک ایجنسي
خیبر بازار پېښور

# د پښتو تاریخ

مؤرخ

## قاضي عطاء الله خان





یونیورستي بک ایجنسي
خیبر بازار پیښور

## کتاب پیژندنه:


| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | د پښتنو تاریخ |
| تدوین و تالیف | : | قاضي عطاء الله خان (مرحوم) |
| دویم ځل | : | مارچ ۲۰۰۴ |
| تعداد | : | یو زر ۱۰۰۰ |
| د چاپ ځائے | : | جدون پرنټنګ پریس خیبر بازار پیښور |
| بیعه ________ | | |






خپرونکی

یونیورسټی بُک ایجنسی

خیبر بازار پیښور

فون: 212534

# فهرست





# "د سر خبرې"

د قاضي عطاء الله "د پښتنو تاریخ" ـ د پښتنانهٔ د تاریخ ـ په تاریخ کښې ـ د تاریخ دوئم کتاب دے. چې یو پښتون په پښتو ژبه لیکلے دے. تاریخ مرصع دافضل خان ختک د پښتنو د تاریخ وړومبے داسې کتاب. وو چې ددې خاورې او په دې خاوره اوسېدونکي پښتون پښتنو ته د هغوئي پخپله مورنۍ ژبه پښتو کښې ولیکهٔ. دا یو ډېر اهم تاریخي پېش رفت وو په دې چې تاریخ مرصع د پښتون د تاریخ د هغه عصر په باب له یو قوي اندورني شهادت یو اهم سند او ماخذ هم دے. د تاریخ مرصع د دوباره یا تېدو نه وړاندې د پښتنو په حقله یا د دوئي د قام د تاریخ په حواله ډېرې تېروتنې رامخکښې شوي وې. کله چې انګرېزانو د پښتون اولس په تاریخ د تحقیق د کار شروع وکړه نو تاریخ مرصع ئې د یو اهم بنیادي دستاویز په حېث د تیرې نه رڼا ته راووېستو. داسې د پښتنو په تاریخ، د دوئي په اصل نسل د تحقیق او څېړنې کار یو نوے او اصل رنګ اخستل شروع کړل.

د افضل خان ختک د "تاریخ مرصع" او قاضي عطاء الله " د پښتنو تاریخ" تر مېنځه او وړاندې نور د اهمیت وړ د تاریخ کتابونه هم وو لکه تاریخي ابراهیمي د ابراهم بېټني خلاصة الانصاب ، د حافظ رحمت خاني، عهد بنګش د مفتی ولي الله فرخ آبادي، تواریخ خورشید جهان د شېر محمد ګنډاپور، تاریخ سلطاني د سلطان محمد خان بارکزي، حیات افغاني د ډپټي حیات خان پوپلزي، او داسې نور، ولې هغه په پښتو ژبه کښې نه وو لیکلي شوي. یو بل اهم کتاب د احمد علي کهزاد د افغانستان پخوانے تاریخ هم لیکلے شوے وو. چې اصل په فارسي او ترجمه ئې پښتو کښې شوې وه. ولې هر کله چې د کهزاد تاریخ د قام اولس نه زیات د پښتنانهٔ د زوړ ټاټوبي پحقله د ماقبل تاریخ د زمانې په واقعاتو او تحقیقاتو بناوُپه دې سبب دغه کتاب هم د پښتنانهٔ د تاریخ یو اهم او بنیادي دستاویز خو دے. ولې د پښتون قام د وجود او تاریخي واقعاتو خصوصاً د نژدې ماضي ذکر نهٔ لري. په فارسي ژبه لیکلے دغه تاریخ ښاغلي محمد یونس مراد، ښاغلي عتیق الله معروف، ښاغلي غلام جېلاني جلالي او ارواښاد ښاغلي قیام الدین خادم او نورو عالمانو په پښتو ترجمه کړے دے. د افغانستان "پخوانے تاریخ" د تاریخ د دورو او د معلوم تاریخ د واقعاتو په ځائے د تاریخ هغه ادوار څېړلي دي چې پښتانهٔ لا د یو قام

په حبث نۀ وو پېژندلي شوي او نۀ د پښتانۀ د نوي تمدن اثار پکښې برڅېره شوي وو. نو ځکه:

د قاضي عطاء الله تاريخ په پښتو ژبه د پښتنو دوئم تاريخ دے. چې يو پښتون په داسې وخت کښې ليکلے دے. چې د دوئي په تمدن، کلتور او تاريخ يو څلې بيا لړې خورې شوي وې.

پښتون قام کۀ د صديو د شمېر د وخت نۀ هم ډېر پخوا يو پېژندلے او د ښاغلي تمدن څښتن قام و او په يوويشتمه صدۍ کښې پښتون قام بيا ټولې دُنيا ته خپل شناخت قامي خصوصيت نوم او خاوره هم ورښکاره کړل او هم ئې احساس ورکړو. ولې د تاريخ په بيلا بيلو ادوارو کښې دا قام او دا اولس په اراده په مصلحت د دُنيا د نظر نه پټ هم ساتلے شوے دے. او که ښکاره کړے شوے هم دے. نو ډېرخي د يو غلط تصوير په رنګ کښې پېش کړے شوے دے. ددې عمل ډېر اسباب دي. سياسي هم، نفسياتي هم، تعصبي هم او تاريخي هم.

پښتون قام د دُنيا په تاريخ، نړيوال کلتور او تهذيب ژور اثرات مرتب کړي دي. په دې چې د يو سپېڅلي او ښاغلي تاريخي کردار حامل اولس پاتې شوے دے. ولې بيا هم د ډېرو سياسي مصلحتونو له مخه ددې قام اصل کردار د تاريخ له نظره د پټولو ناولے کار شوے دے او کېږي.

د يو روايت تر مخه دغه مذموم کار له ټولو وړاندې د هند مغلي دربار کړے و. مغل په خپلو درباري نام نهاد مؤرخينو د پښتنو داسې تاريخونه وليکل. چې دا دروند او ښاغلے قام د هند د محکوم اولس تر نظره سپک څرګند کړي. دا يوه سياسي حربه وه. په دې چې په هند کښې د اسلام رڼا هم پښتنو خوره کړې وه او د هند نۀ يوازې د اسلامي تمدن د سازولو معماران پښتانۀ وو د هند په عمومي تهذيب هم ژور پښتني اثرات پرېوتلي وو. د هند د خلقو په ذهن کښې د پښتون يو خصوصي تصوير ساز شوے وو. د خپلو کړو وړو ـ ذهني صلاحيتونو او تر دې چې د ډېرو معاشرتي و اصلاحي کارونو په سبب هم او د مذهب او سياست پحقله د پښتنو بادشاهانو د تنګ نظرۍ او تعصب نه پاک کردار هندوستانيانو د بادشاهت او حکومت د پاره لکه چې پښتانۀ اصل، قابل او فطري حاکمان تصور کول. کله چې مغل خاندان د هند حکومت لۀ پښتانۀ څينې وترورلو. نو د اولس د ذهن نه د دغه تصور ختمولو د پاره ئې درباري مؤرخان کښېنول. چې د پښتانۀ د اصل نسل په باب له د ځانه افسانې وليکي. او هندوستانيان چې د ذات د اصل په باره

کښې ډېر سنجيده فطري او نفسياتي رويهٔ لري د هغوئي په نظر کښې د اصل نسل له رويه پښتون سپک وګرځوي.

کله چې دغه قسمه تاريخونه ليکل شروع کړے شول. نو حقيقي پښتنو ددې د جواب د ليکلو په غرض د پښتانهٔ د اصل نسل پحقله تحقيقات پيل کړل د خان جهان لودهي چې يو ښاغلے پښتون وو. د مغل دربار د يو اهم منصب خاوند او په اُمراؤ کښې د يو لوړ حېثيت څښتن ؤ. د مغل د سپک نظرۍ او د پښتون د سپکاوي د ازالي د پاره د حقيقي تاريخ د ليکلو د کار سرپرستي او حوصله افزائي په دې لړ کښې يو تاريخي قدم دے.

د نعمت الله هروي تاريخ مخزن افغاني لکه چې د مغلو د تاريخ د څېرې د ورانو د کار جواب دے. حيات افغاني او تواريخ خورشيد جهان هم د پښتنو په باب له د ذکر وړ تاريخونه دي. ولې مخزن افغاني تر ډېره وخته د راتلونکيو مؤرخينو ماخذ پاتې شوے دے.

پښتانهٔ د تاريخي الميو له کبله اکثر په تيارهٔ کښې پاتې شوي دي. يا په تيارهٔ کښې ساتلي شوي دي. نو ځکه د ليک لوست او د تعليم او تعلم کار په دوئي کښې ډېر کم پاتې شوے دے. او بيا يوه داسې ژبه چې د دوئي مورنۍ ژبه نهٔ وه. نو علمي کارونه او تاريخونه اکثر په فارسۍ ژبه کښې ليکلي شوي دي. او په فارسۍ پوهېدل او پوهول ګران وو. نو ځکه افضل خټک د ستر خوشحال خان نمسي د خپل نيکهٔ د تحريک په نتيجه کښې په يو داسې دور او داسې حالت کښې هم د پښتانهٔ تاريخ په پښتو ژبه کښې وليکلو. چې فارسي د دربار ژبه هم وه. او د تعليم ذريعه هم. او افضل خان خټک پخپله هم د مغل دربار سره وابسته ؤ. ولې خپل خانداني روايات ورته بيا هم له هر څهٔ غوره ښکارېدهٔ.

يو وخت داسې هم راغلو. چې پکښې نهٔ يواځې تاريخ مرصع ورک شو. د پښتو د تحريک د زرين دور ټول آثار د تيارو ګوټونو ته لاړل. يا د پښتنو په تاريخ هغه تيرې بيا پېر وکړو. کومه چې وخت په وخت په دې اولس د دوئي د ناپوهۍ له سببه راځي. په دغه تيره کښې ډېر څهٔ لهٔ نظره پناه هم شو او پناه هم کړے شو. او په پښتنو که څهٔ هم بيا او بل احسان مستشرقينو وکړو. چې د تحقيق نوي ورونه ئې پرانستل. د پښتنو په تاريخ ئې هم ګڼه ور تحقيقات وکړل. خو هغوئي ددې خاورې خلق نهٔ وو. د تاريخ واقعاتو او حالاتو تجزيه ئې هغه رنګ نشوه کولے لکه څنګه چې ئې ددې خاورې خپل وګړے کولے شي. نو

په يو بل دور کښې قاضي عطاء الله د پښتنو تاريخ د يو تاريخي ضرورت له مخه وليکلو. اګرچې دا تاريخ هم په هغه ورځو کښې وليکلے شو. چې کله تاريخ دانۍ او تاريخ د سائنس درجه پوره تر لاسه کړے نۀ ده. ولې تاريخ آرټ هم نۀ و. او د آرټ کومې نمونې چې د مغلو يا نورو تاريخونو کښې ښکارېدې. هم د هغو د صحت او درستولو په غرض په پښتو کښې تاريخ ليکل ضروري وو. خو دا هم حقيقت دے. چې تاريخ د علم يوه اهمه څانګه په دغه ورځو کښې هم وه. نو قاضي عطاء الله چې يو ستر عالم. تاريخ پوه او ملي مبارز هم ؤ. هغه د آزادۍ د تحريک يو زړۀ ور او اهم مجاهد هم ؤ. او د خدائي خدمت ګار تحريک په سر خېلانو کښې ؤ. نو په ډېرو نامساعدو حالاتو کښې ئې دا اهم کار تر سره کړو. د قاضي عطاء الله مقصد د پښتنۀ د تاريخ او د تاريخي کردار اصل او روښانه څېره ښکاره کول وو. پښتنون ته د خپلې نژدې ماضي هغه حالات او واقعات ورڅرګندول وو. چې پکښې د هغه د حاکميت او حکومت، د هغه شان و شوکت پوره په آب و تاب ښکارېدۀ. دا د ځان د پېژندنې د تحريک يو اهم مقصد ؤ. نو ځکه "د پښتنو تاريخ" کښې اهم مقامات هم هغه دي. کوم چې د پښتون د تاريخ په باب له د واقعاتو صحيح جاج دے.

د پښتنو د اصل نسل په باب له پوره تاريخي فېصله تر اوسه نۀ ده شوې. د بيلو بيلو مؤرخانو بيلې بيلې نظرئې دي. قاضي عطاء الله د پښتون د اصل نسل په باره کښې د بني اسرائيل د نظرئې حامي دے. او قاضي صېب مرحوم نه پس ته هم دغه نظريه مؤرخينو منلې ده. ولې دغه موضوع ځان ته يو بحث دے.

د قاضي عطاء الله مرحوم تاريخ يو ډېر اهم دستاويز هم دے. او د پښتنۀ د تاريخ په باب له يو ګټه ور او ارزښتناک سند هم دے. ددې کتاب ارزښت ډېر زيات دے. ولې څنګه چې د پښتو د کتابونو قسمت دے. ددې اهم تاريخ د شائع کېدو. نه زر پس دا د ورکې تيارې ته لاړو. دا خطره راپېښه شوه چې کۀ دا سر دوباره په وخت شائع نۀ کړے شي. نو دا به هم د پښتو د نورو اهمو کتابونو په شان داسې ناياب شي. چې د پښتو طالب علم او د تاريخ طالب علم به ورپسې په تياره ګوټونو کښې لاس او پښې وهي. د ميا فضل منان علمي او ادبي خدمات د چا نه پټ نۀ دي په ډېرو ناساز ګارو حالاتو کښې اروابناد ميا فضل منان د پښتنو ليکوالو حوصله افزائي کړې ده. د پښتو د ادب په فروغ او اشاعت کښې چې څومره کار ميا صېب مرحوم کړے دے. هغه به د ژبې او د ادب په تاريخ کښې مدام ستائلے شي. ميا صېب مرحوم يو کلک پښتون وو. د پښتو او پښتون

سره د هغه مینه او اخلاص د انتها تر حده ؤ. ډېر پښتانۀ عالمان ادیبان او شاعران د هغۀ ددې مینې ګواه دي.

او بیا په خصوصي توګه میا فضل منان مرحوم د پښتنو د تاریخ پحقله د یو مخلص او سنجیده فکر خاوند ؤ. د پښتنو د تاریخ لیکلو او د اشاعت په کار کښې چې میا صېب مرحوم کومه دلچسپي لرله. د هغې کۀ یو شهادت هم وړاندې کړو. نو هغه د میا بهادرشاه ظفر کاکاخېل معرکته الارا کتاب " پښتانۀ د تاریخ پۀ رڼا کښې" نومې کتاب دے. د دومره ضخیم کتاب اشاعت او بیا په داسې حالت کښې چې د پښتو خریداران په وړو کښې د مالګې برابر وو. ولې میا فضل منان مرحوم د خپلې مینې د اظهار په توګه دغه اهم او ضخیم د تاریخ او د پښتانۀ د تاریخ شاهکار کتاب شائع کړو. او داسې ښکاري چې د څۀ مالي منعت د پاره نه بلکې د پښتنې جذبې د تسکین په خاطر ئې د مینې د جنون یوه تقاضا پوره کړې ده. د میا فضل منان مرحوم د پښتو د ادب تاریخ او د نورو علمونو د اشاعت د تاریخي کارنامو ذکر که راواخستے شي. نو دا خبره به ډېره اوږده شي. ولې د دوست محمد خان کامل مرحوم د تاریخ مرصع د تالیف او تدوین د کار د اشاعت خبره بیا هم ډېره ضروري ده. د پښتو دغه ضخیم ترین کتاب چې تر اوسه پورې د پښتو له ټولو غټ کتاب دے. دومره چې یو تن ئې په ګرانه اوچتولے شي. او کۀ د اخستلو خبره کُوو نو اخستل ئې د هغې نه هم ګران پرېوځي. دغه اهم تاریخ هم میا فضل منان په هغه جذبه او مینه شائع کړے ښکاري. چې اوس ئې دوباره اشاعت که هر څو د وخت ډېر اهم ضرورت دے. خو ډېره ستره سرمایه کاري هم غواړي د دومره ډېرې سرمائې په لګښت دومره اهم کتابونه شائع کول بې د مینې نه بل څۀ کېدے شي.

د میا صېب ځامن د خپل محترم پلار دغه روایت ته د دوام ورکولو په غرض او د میا صېب مرحوم د تحریک په مخ د بوتلو په مقصد د قاضي عطاء الله مرحوم دا اهم کتاب د " پښتنو تاریخ " دوباره په ښکلي اهتمام چاپ کړو. دا کۀ یوې خوا ته د خپل پلار مشن سره خلوص دے. نو بل خوا د هغوئي خپله مینه هم ده. او د خپلې ادارې د پښتو د اشاعتي روایت پالنه هم ده.

الله تعالی دې وکړي چې پښتانۀ دې کتاب " د پښتنو تاریخ" ته په مینه هر کلے اووائي. او داسې پذیرائي ئې وکړي چې د میا فضل الله، میا عبدالله، میا انعام الله او میا رضوان الله د خپل خانداني روایت پرې حوصله اومومي.

زۀ پخپله د میا صیب د ځامنو په دوه رنګه مننه کوم. یو خو په دې چې د پښتو دومره اهم تاریخي دستاویز ئې نه یواځې د کتاب په صورت کښې بیا محفوظ کړو په دې هم چې په دومره ښکلي اهتمام او ګټ اپ سره ئې په یو جلد کښې رایو ځائے کړو. ځکه چې وړاندې ځلورو جلدونو کښې وو. یو یا دوه جلدونه به یاتېدل او نور به اکثر د بې غورۍ له کبله ورکېدل. اوس به دغه پرېشاني طالب علمانو ته نه پېښیږي.

او بله شکریه ئې په دې ادا کووم چې په دې اهم تاریخي کتاب ئې زما په منډه منډه لیکلي دا یو څو کرښې ځائے کړې. خو په منډه منډه لیکل راباندې هم میا صیب وکړل.

د میا صیب د ځامنو په نرمۍ اصرار هم هغه تاثیر او خاصیت لري. کوم چې د میا صیب مرحوم فضل منان په سختۍ او درشتۍ کښې وو. د میا صیب فضل منان دوستانو هغه ته د هغه د سپین زړۀ توب د سختۍ له ویرې انکار نشو کولے او د هغهٔ د ځامنو ته د هغوئي دوستان د نرمۍ پستې او مینه ناکې لهجې د تاثیر له مخه انکار نه شي کولے. بیا هم زۀ د خپل ګران دوست میا فضل الله او د هغه د ورونو ډېره ډېره مننه او تشکر کوم. چې زما دا یو څو په بیړه بیړه لیکلي الفاظ ئې ددې جوګه وګرځول. چې د قاضي عطاء الله په شان ستر عالم او د تاریخي شخصیت څښتن د پښتنو د تاریخ شاهکار کتاب د " د پښتنو تاریخ" کښې د سر د خبرو په حېث ځائے شي.

پروفېسر ډاکټر راج ولي شاه خټک

# دیباچه

هسې خو د ډیرې زمانې نه زما دا شوق وۀ چې زۀ د خپل پښتون قام تاریخي حالات راجمع کړم او د یو کتاب په شکل کښې ئې قام ته پیش کړم خو په صوبه سرحد کښې د قومي تحریک جاري کیدو او په دې تحریک کښې زما شرکت زما دا شوق نور هم تیز کړو. ځکه چې د یو قوم د ذلت او د تباهی نه د بچ کولو دپاره د هغې قام تاریخ یو زبردست سامان دے. یو قام چې د پریوتې حالت نه د پورته کیدو په طرف روان شوے دے نو د پخوانو تاریخ په دې کښې ډیر زیات مدد کړے دے. په دنیا کښې هر یو قام صرف د خپلو مشرانو د ښو کارنامو نه عبرت او سبق اخلي. او مخکښې تګ ته تیاریږي. د تاریخ د مطالعې نه ثابته ده چې د نورو قامونو په شان زمونږ د پښتون تاریخ هم ډیر شاندار دے. خصوصاً د قومي ازادی دپاره چې پښتنو کومې قرباني کړې دي د غیر ملکي حکومتونو مقابلې چې څومره پښتنو کړې دي دا کۀ د نورو قومونو نه زیاتې نۀ وي نو کمې خو هر ګز نۀ دي. نو ځکه زما دا ارزو ده چې خپلو پښتنو وروڼو ته د خپلو پخوانو مشرانو د ژوند حالات پیش کړم او په دې صورت د خپل قام د یو لوے خدمت په کوشش کښې کامیاب شم. مګر د داسې کار دپاره فرصت او وزګارتیا ډیر ضروري څیز دے. او زۀ د ناوزګارتیا په وجه تر ډیرې مودې په دې مقصد کښې کامیاب نۀ شوم. تر دې چې د کال ۱۹۳۱ء په دسمبر میاشت کښې انګریزي حکومت زمونږ سیاسي جدوجهد برداشت نۀ کړې شو نو عام خدائي خدمتګار خو ئې د سرحد په مختلفو جیلونو ورننه ایستل او مونږ څلور کسان یعنې فخر افغان خان عبدالغفار خان، ډاکټر خان صاحب، سعدالله خان (د ډاکټر صاحب مشر زوے) او زۀ ئې د خپلې صوبې نه ډیر لرې د هندوستان په جدا جدا جیلونو کښې بندیوان کړو. څو میاشتې خو مونږ بالکل ځان ځان له وسیدو خو بیا زۀ او سعدالله خان د بنارس په سنټرل جیل کښې یو ځاے شو. دغه وخت ماته یو وړه فرصت حاصل شو او ما د خپلې زړې ارزو د تکمیل دپاره بسم الله ووې. دا کتاب لیکل مې شروع کړل خو دا معلومه خبره ده چې د یو تاریخي کتاب لیکلو دپاره د تاریخي کتابونو مطالعه ډیره ضروري وي. او د یو قیدي په حیثیت د کتابونو دپاره زۀ د جیل د افسرانو د مدد محتاج وم. زۀ دا نۀ وایم چې د جیل افسرانو زما مدد نۀ کولو مګر هر یو کتاب راپیدا کول د هغوي دپاره اسان کار نۀ وۀ. بهرحال کوم کتابونه چې هغوي مهیا کولے شو، هغوي ماته راورسول او ما خپل کار شروع کړو. په دې موقع زۀ د خپل عزیز رفیق سعدالله خان ډیر زیات ممنون یم چې زما ئې ډیر زیات مدد کړے دے. بلکې اکثر مضامین به ما وې او هغۀ به لیکل، یواځې لیکل نه بلکې د کتابونو په مطالعه کښې ئې هم ما سره ډیر لاس کړے دے. څۀ وخت چې مونږ د جیل نه راغلو نو زۀ بیا ډیر سخت ناوزګاره شوم او د کتاب مسوده هم دغسې پرته وه. آخر ما

فیصله وکړه چې ځان له کتاب چاپ کیدل خو ډیر وخت غواړي نو ښه به دا وي چې دا کتاب زمونږ په قومي اخبار "پښتون" کښې په قسطونو سره چاپ شي. "پښتون" دا سلسله جاري کړه او ډیرې میاشتې په هره پرچه کښې به درې څلور صفحې چاپ کیدلې خو وروستو زما دا طریقه خوښه نهٔ شوه. "پښتون" زما تاریخ ته څلور صفحې وقف کړې وې او دا پرواه ئ نهٔ کوله چې یو بحث دې په یوه موزونه موقع ختم شي بلکې چې صفحې به پوره شوې نو کهٔ بحث به بالکل نیمګړې وهٔ خو قسط به په هغه ځاې ختم کیدو. آخر ما د دې کتاب اشاعت په "پښتون" کښې بند کړو او ډیره موده بیا هم دغسې مسوده پرته وه. ماته ډیرو دوستانو او د تاریخ شوقیانو چا چې په "پښتون" کښې څهٔ حصه لوستې وه، خواهش ظاهر کړو چې کهٔ دا کتاب ځان له چاپ شي نو قام ته به ترې ډیره فائده ورسي. خو زهٔ دې ته کله وزګاریدې شوم. آخر په ۱۹۴۲ ء کښې مونږ بیا ونیوې شواو د پیښور په سنټرل جیل کښې بندیوان کړې شو. دغه وخت ما بیا غنیمت وګڼلو، اراده مې وکړه چې زړه مسوده راوغواړم ځکه چې هغه ډیره صفا نهٔ وه نظر ثاني پرې وکړم او صفا ئ کړم. دا مسوده د "پښتون" مدیر سره پرته وه ما د هغهٔ نه راوغوښته او د نوي سر نه مې بیا د هغې ترتیب شروع کړو. دا ځل زما ملګري خان امیر محمد خان، کامدار خان مرحوم، منفعت خان... وغیره وو. نو دې صاحبانو ما سره کافي امداد وکړو او مسوده مې صفا کړه خو د جیل نه د راوتو سره سم ماته بیا د وزارت کار حواله شو چې په دې کښې سر ګرولو ته هم سړے وزګاریدے نهٔ شي. نو ډیره موده مسوده هم دغسې پرته وه ما هر څومره چې خواهش لرلو چې دا کتاب دې ډیر زر چاپ شي خو زهٔ بې وسه وم. ما د "پښتون" مدیر عبدالخالق صاحب خلیق ته ووې چې د دې کتاب په چاپ کولو کښې زما مدد وکړه. خلیق صاحب وعده وکړه او دا د هغهٔ د مدد نتیجه ده چې د "پښتنو د تاریخ" وړومبنے جلد شائع شهٔ او امید دے چې د دې کتاب نور جلدونه هم ډیر زر شائع شي.

زهٔ دا دعوې نهٔ کوم چې دا تاریخ بالکل مکمل دے. زهٔ چونکې په خپله افغانستان ته تلے نهٔ یم نو په دې کتاب کښې د کلو او علاقو نومونه کهٔ بعضې غلط وي نو دا دې زما قصداً غلطي نشي ګڼلے دا به زما مجبوري وي. دغسې شاید چې بعضې واقعات مې د حقیقت نه خلاف لیکلي وي نو د دې ذمه واري هم په هغه مؤرخینو ده د چا د تصنیفاتو نه چې ما اخذ کړې دے. بیا هم ما په خپل وس کوشش کړے دے چې کمزوري او ضعیف روایتونه د نظر نه وغورځولے شي او کوم روایتونه چې ماته قوي ښکاریدل هغه صحیح وګڼلے شي. زهٔ د کتابونو نومونه دلته لیکل ضروري نهٔ ګڼم د کومو نه چې ما فائده اخستې ده، ولې چې هغه په کتاب کښې په خپل خپل ځاې لیکلي شوي دي. دا کتابونو چونکې اکثر انګریزانو لیکلي دي ممکنه ده چې هغوي پکښې د خپلې سیاسي پالیسی لحاظ کړے وي بعضې واقعات ئ غلط ښودلي وي نو زهٔ په دې خبره د خپلو تمامو پښتنو نه او خصوصاً د افغانستان د پښتنو وروڼو نه

معافي غواړم چې هغوی دې دا زما پالیسي نهٔ ګڼي او په دغه لیکلو دې ما معذور وګڼي.

د پښتنو تاریخ ډیر وړد دے ما صرف د پښتنو تاریخ دویم دور یعنې د کال ۶۲۲ ء نه تر ۱۸۷۹ ء پورې راخستے دے. وړومبے دور هغه دے چې د محمود غزنوي نه شروع شوے دے او د شیر شاه سوري او بهلول لودي پورې رارسیدلے دے دٔهغې نه پس دویم دور شروع شوے دے چې د هغې تاریخ ما ولیکلو. فقط.

عطاء الله

# د پښتنو تاریخ

د تاریخ لوستو یواځې دا فائده نهٔ ده چې د سړي په معلوماتو کښې اضافه وشي خلق دهٔ ته د یو عالم په حیثیت وګوري بلکې لویه فائده د تاریخ دا ده چې په لوستونکي کښې د شجاعت، بهادری، رښتیاؤ ته د رښتیا او باطلو ته د باطل وئیلو صفتونه پیدا کړي. د تاریخي کتابونو د مطالعې نه د سړي حوصله او همت زیاتیږي د ننګ ناموس کارونو ته ئې شوق پیدا کیږي. د بدو کارونو او د بد ناموسۍ د کارونو نه ئې نفرت پیدا کیږي د ملک او قام سره ئې مینه پیدا کیږي. د صبر ، استقلال او احتیاط صفتونه پکښې پیدا کیږي غرض دا چې د زړګونو واعظانو نه بهترین وعظ تاریخ دے.

ځکه خو الله تعالیٰ په قرآن شریف کښې د پخوانو خلقو د تاریخي حالاتو وړدې وړدې قصې بیان کړي دي چې مسلمانان د هغو نه عبرت واخلي. د نیکۍ په لار روان شي او د بدو کارونو نه لاس واخلي. تاریخ هر یو ډیر فائده مند دے خو خاص د خپلو مشرانو د حالاتو چې په سړي کوم اثر کیږي هغه د پردو خلقو د تاریخ نه نهٔ کیږي. په یو عرب کښې قومي جذبه هله پیدا کیږي چې هغه د خپلو عربو مشرانو تاریخي حالات ولولي او یورپین د خپلو یورپینو مشرانو د تاریخ نه فائده اخستے شي.

زمونږ د پښتنو دا ډیره بدقسمتي ده چې خپل تاریخ نهٔ لرو مونږ ته همیشه د پردو خلقو د تاریخ درس راکیدے شي او د خپلو مشرانو د حالاتو نه ډیر کم خبریږو. حال دا چې پښتون قام په تاریخ کښې د چا نه وروستو نهٔ دے. د پردو حکومتونو مقابله چې څومره پښتنو کړې ده شاید چې ډیرو کمو خلقو کړې وي. مګر چونکې زمونږ د تعلیم واګې د غیرو خلقو په لاس کښې دي نو زمونږ تاریخ هم په تیارهٔ کښې پروت دے. آنریبل قاضي عطاء الله خان صاحب د ډیرې ستائینې لائق دے چې هغهٔ د خپل قیمتي وخت یوه لویه حصه دې فائده مند کار ته ورکړه او د "پښتنو تاریخ" ئې ولیکلو. امید کیدے شي چې پښتانهٔ به دې قابل قدر کتاب ته په سر سترګو ځاے ورکړي او پښتون بچے بچے به د دې کتاب نه مستفیض شي. دغسې د سرحد د حکومت فرض دې چې دا بهترین کتاب د تمامو سرکاري لائبریرو دپاره واخلي او په نصاب تعلیم کښې هم دې کتاب ته ځاے ورکړي ولې چې په کومه نیکه اراده دا کتاب لیکلے شوے دے هغسې ترې پښتون قام فائده واخلي. بس.

عبدالخالق خلیق

۱۸ اګست ۱۹۴۷ء

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د پښتنو اصل نسل او
# د هغوي وطن مالوف

**د پښتنو** د اصل نسل متعلق مختلف روايتونه دي. مستشرقين يورپ د هغوي د اصل نسل متعلق مختلف رائے لري او هم په دغه وجه په يو خاص فيصله كن نتيجه نهٔ دي رسيدلي. د دې برخلاف د پښتنو خپلو مؤرخينو دا بيان كړے دے چې پښتون قوم په اصل كښې د يهوديانو د هغه لسو قبيلو اولاد دے كوم چې بخت نصر په بيت المقدس باندې د حملې كولو په وخت د هغه ملک نه سره د نورو يهوديانو خارج كړي وو. د يهوديانو دا لس قبيلې د هغوي د قول مطابق وسط ايشيا ته راغلې او د غور په غرونو كښې آبادې شوې او څهٔ عربو ته لاړې او د مكې شريفې په خواوشا كښې آبادې شوې. د دې لس قبيلو د نيكهٔ نوم د مؤرخينو د قول مطابق "افاغنه" وهٔ او په دې وجه د هغهٔ اولاد د افغان په نوم مشهور شهٔ. په دوئ كښې بعضې مؤرخين وائي چې دا افاغنه د ابراهيم عليه السلام د بي بي هاجرې په نمسو كښې يو نمسے دے او د حضرت اسمٰعيل عليه السلام د اولاد نه وهٔ. مگر بعضې دا وائي چې افغان د ارميا زوے وهٔ او ارميا د طالوت عليه السلام چې د بني اسرائيلو بادشاه وهٔ (او په قرآن شريف كښې هم په دويمه پاره كښې دويم سورت بقر آيت ۲۴۷ كښې د هغې ذكر شوے دے) زوے وهٔ. دا قبيلې د رسول الله صلي الله عليه وسلم تر مبعوث كيدو پورې بدستور په خپل زوړ مذهب يهوديت باندې قائمې وے. حضرت خالد رضي الله عنه چې يو مشهور صحابي وهٔ هغه هم د دغې افغان قبيلې نه كيلے شي چنانچه د رسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كښې هر كله چې خالد رضي الله عنه مسلمان شو نو هغهٔ خپلو عزيزانو ته چې د غور په غرونو كښې د قديم الايام نه اباد وو د اسلام قبلولو دعوت وركړو. ولې دوي د اسلام قبلولو نه وړومبے يوه جركه د قيس نومے يو پښتون د مشرى د لاندې د اسلام د مذهب د مطالعې او په هغې باندې د پوهيدلو دپاره دربار رسالت ته وليږله. رسول كريم صلي الله عليه وسلم د دې جركې ډير قدر او عزت وكړو او قيس له ئې د ملک عبد الرشيد خطاب وركړو. دې ټولې جركې هم په هغه ځاے اسلام قبول كړو او رسول كريم صلي الله عليه وسلم هغوي ته ډيره دعا وكړه. او يو څو عرب مبلغين ئې ورسره د تبليغ دپاره واستول. او تقريباً څلويښت كاله كښې دا ټولې قبيلې مسلمانې شوې.

بعضې مؤرخين د پښتنو د يهودي النسل كيدو كښې دا واقعه هم بيانوي چې څهٔ وخت نادر شاه (شاه ايران) په هندوستان د حملې كولو په غرض پيښور ته راورسيدو نو د يوسفزو مشرانو هغهٔ ته د تورات يوه نسخه چې هغه په عبراني ژبه كښې ليكلې شوې وه پيش

کړه او نور هم ډير داسې ځيزونه ئ ورته ښکاره کړل چې کوم به د وړومبنې زمانې يهوديانو په خپلو عبادتخانو کښې استعمالول. چنانچه کوم يهوديان چې د نادر شاه په فوځ کښې شامل وو هغوي دا ټول ځيزونه وپيژندل او د هغوي يهودي النسل کيدل ئ تسليم کړل.

په دې سلسله کښې د عبدالله خان هراتي چې يو پښتون مؤرخ دے رائ هم قابل غور ده. هغه وائي چې طالوت عليه السلام د يهوديانو بادشاه وۀ د هغۀ دوه زامن وو چې د يو نوم افغان وۀ او د بل نوم جالوت. افغان د پښتنو د قوم نيکۀ وۀ او په دې وجه هغوي د افغانانو په نوم مشهور شول. د داؤد او سليمان عليهما السلام د بادشاهۍ نه پس( چې هغوي د طالوت عليه السلام جانشينان وو) د يهوديانو قوم کښې خانه جنگي شروع شوې او دا د بخت نصر تر وخته جاري وے او بخت نصر په بيت المقدس باندې قبضه وکړه او اويا زره يهوديان ئ قتل کړل بيت المقدس ئ وران کړو او پاتې شوي يهوديان ئ د بابل ښار نه بنديوان بوتلل. د دې نه پس د افغان قبيله د خپلې ويرې نه د جويه ملک ته وتښتيدله او په عربو کښې اباده شوه. چونکې دا ملک ډير شکلن او بې آب و گيا وۀ او د هغوي د څاروو گزاره په هغه کښې نۀ کيده په دې وجه هغوي د هندوستان په لوري روان شول. عبدالله خان مخکښې وائي چې " چې د ابداليانو قبيله په عرب کښې پاتې شوه او د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په زمانۀ خلافت کښې هغوي خالد بن وليد رضي الله عنه (چې مشهور صحابي وۀ) سره خپلولي وکړه. په دې وجه د ابداليانو په عربو کښې زور زيات شو ليکن کله چې عربو ايران فتح کړو نو ابداليان په دې نوي فتح کړي ملک کښې اباد شول او د فارس او کرمان په صوبو باندې ئ قبضه وکړه تر دې پورې چې چنگيز خان په ايران باندې چپاؤ وکړو نو د هغۀ د ظلم او زور زياتي نه ابداليان تنگ شول او ايران ئ پريښودو او د مکران، سند او ملتان په لارې هندوستان ته راغلل ولې په دې ځاے کښې هم د دغې ملک خلقو پرې نۀ ښودل جنگونه ئ ورسره وکړل او د کوه سليمان ځيگو غرونو ته ئ ووشړل. د ابداليانو کوه سليمان ته په راتلو سره د افغانانو ټول قومونه متفق شول. په دې زمانه کښې د افغانانو څلويښت قبيلې وے او د هغوي د ټولو نيکۀ افغان د طالوت عليه السلام زوے وۀ. د دې برخلاف بعضې مؤرخين وائي چې افغان اصلي پښتو لفظ نۀ دے دا د عربي لفظ دے هر کله چې عربو دا ملک فتح کړو نو پښتنو ته ئ د هغوي د بې اتفاقو، جنگ جگړو او په جرگو کښې د ډير شور کولو په وجه افغان لفظ استعمال کړو. افغان لفظ د "فغان" نه وتلے دے چې په عربي کښې شور ته وائي. په مستندو تاريخونو کښې لفظ افغان د پښتنو د قوم دپاره اول ځلې د سلطان ابو سعيد مرزا (۱۳۱۶ء) په زمانه کښې مؤرخينو استعمال کړے دے او عام طور باندې دا لفظ د پښتنو دپاره د شاه عباس اعظم (چې د ايران يو لوے بادشاه په ۱۵۸۷ء کښې تير شوے دے) په زمانه کښې استعمال شوے دے.

نعمت الله چې د پښتنو د قام يو مشهور مؤرخ وۀ هغه په خپل کتاب کښې وائي چې د پښتنو د اصل نسل په حقله مستند کتابونه او روايتونه څکه نشته چې هر کله موسیٰ عليه السلام په فرعون باندې برے حاصل کړو او د بيت المقدس او شام ملک ئې ترې واخستو نو بيا د هغې نه پس بخت نصر په بني اسرائيلو حمله وکړه هغۀ د هغوي ټول ملک لاندې کړو بيت المقدس ئې لوټې لوټې کړو او هغوي ئې د ملک نه وشړل. د دې نه پس بني اسرائيل در په در کله په يو ملک او کله په بل ملک کښې، کله په غرونو او کله په سمه کښې د کوڅيانو او خانه بدوشو خلقو په شان وسيدل. نۀ خو په هغوي کښې څۀ علمي لياقت پاتې شو او نۀ مذهبي. د تاريخ نويسی د هنر نه هغوي بالکل ناآشنا شول او کوم علوم و فنون چې هغوي د خپلې خود مختاری او حکومت په وخت کښې حاصل کړي وو هغه هم ټول د هغوي نه هير شول. علاوه د دې نه چونکې د هغوي د خاندان نه بادشاهي او حکومت هم لاړلو او په هر قام کښې د علومو فنونو ترقي هله پسته کيږي چې هغه قوم خودمختار او حاکم وي. په دې وجه هم په بني اسرائيلو کښې د تاريخ د ليکلو او د خپل قام د واقعاتو د قلم بند کولو قابليت او شوق پاتې نۀ شو.

نعمت الله بيا وړاندې ليکي چې سره د دې چې د پښتنو د اصل نسل متعلق تاريخي کتابونه نشته مگر د ډيرو زړو روايتونو نه چې سينه په سينه په خلقو کښې راغلي دي دا ثابته ده چې د ابن يمين بن يعقوب عليه السلام يو نمسے وۀ چې د هغۀ نوم قيس وۀ د هغۀ ټول پدري جائداد صرف څلور گډې وے. د قيس يو ډير ښکلے زوے وۀ چې د هغۀ نوم سارول وۀ ولې چونکې هغه په قدوقامت کښې دنگ لوړ وۀ له دې کبله به ئې هغۀ ته طالوت وئيل. طالوت د دې څلورو گډو د څرولو نه علاوه يو خر هم ساتلے وۀ او د دريائے نيل نه به اوبۀ هم په دۀ کور دپاره راوړې. يوځل دا شان چل وشو چې د طالوت نه په دې څلورو گډو کښې دوه گډې ورکې شوې او هر کله چې هغه په خپلې ورکې پسې تلاش کولو نو د لاوي قبيلې يو ځوان سړے چې اسمٰعيل ئې نوم وۀ هغۀ له مخے له ورغے. اسمٰعيل چې څۀ وخت طالوت وليدو نو سمدستي ئې په تيلو د هغۀ سر غوړ کړو دې تيلو په لږ ساعت کښې د طالوت په سر باندې د يو تاج شکل اختيار کړو. اسمٰعيل هغۀ ته بيا سلام وکړو او ورته ئې ووئيل چې تۀ اوس د بني اسرائيلو بادشاه شوې. سارول د دې نه پس د لاوي په قبيله کښې دوه ودونه وکړل د يوې بي بي نه د هغه يوه لور پيدا شوه چې بيا وروستو په داؤد عليه السلام باندې وادۀ شوه. د داؤد عليه السلام دولس ورونه وو او دے د ټولو نه کشرے وۀ. د داؤد عليه السلام او د هغۀ ورونه د خپل قوم بني اسرائيل د طرف نه د عمالقه قوم مقابله کښې ډير په شجاعت او بهادری سره جنگي خدمات ادا کړل. چنانچه د دې خدماتو په بدل کښې طالوت د خپل حکومت د يوې لويې حصې انتظام داؤد عليه السلام ته وسپارلو. داؤد عليه السلام خپل اختيارات او مشري دا

شان په انصاف او ایمانداری وچلول چې په خلقو کښې ئ نوم پیدا کړو او د طالوت د مرګ نه پس هم هغه د طالوت په ځاے د بني اسرائیلو بادشاه شو. د طالوت د مرګ نه ډیره لږه موده پس د دې دواړو بیبیانو نه د هغهٔ په یو وخت کښې دوه زامن پیدا شول د یو نوم برکیا او د بل نوم ارمیا کیښودے شو داؤد علیه السلام د طالوت کونډو بیبیانو سره ډیر ښهٔ سلوک وکړو. برکیا او ارمیا د خپل شجاعت، بهادری او عدل و انصاف په وجه دومره ښهٔ انتظام پخپلو خپلوعلاقو کښې قائم کړو چې د ملک د یو ګوټ نه تر بله ګوټه د هغوي د قابلیت او د لیاقت نوم خور شو. د هغوي د کمالاتو او د نیکو خصلتونو د کبله داؤد علیه السلام ولګیدو نو برکیا ئ خپل وزیر اعظم او ارمیا ئ خپل سپه سالار مقرر کړل. د هغوي د خوش خلقی عدل و انصاف، د بهادری او د علم و فضل په وجه عام رعایا ته د حد نه په اورته زیاتي خوشحالي حاصله شوه. تجارت آمدورفت کاروبار او زراعت لس چنده ترقي وکړه او په خلقو کښې هر طرف ته امن و امان او دولت پیدا شو. څهٔ زمانه پس برکیا او ارمیا دواړو ودونه وکړل او دواړو له خداے یو یو زوے ورکړو. برکیا د خپل زوي نوم آصف او ارمیا د خپل زوي نوم افغانه کیښودو.

برکیا او ارمیا په خپل خپل وخت باندې وفات شول. د داؤد علیه السلام د مرګ نه پس سلیمان علیه السلام د هغهٔ زوے د بني اسرائیلو بادشاه شو. هغهٔ د برکیا او ارمیا زامن د خپل خپل پلار په عهدو مقرر کړل. افغانه ته علاوه د فوځ د سپه سالاری نه سلیمان علیه السلام د بیت المقدس د ابادولو کار هم وسپارلو چنانچه د افغانه په ژوندون کښې د بیت المقدس ابادیدل سر ته ورسیدل. د دې نه پس الله تعالیٰ د آصف او د افغانه په کورونو باندې ډیر برکت وکړو. د آصف اتلس او د افغانه څلویښت زامن پیدا شول. او دوي بیا تر دې پورې زیات شول چې د سلیمان علیه السلام د وفات کیدو په وخت کښې د دې دواړو د قبیلو هومره طاقت منده او لویه قبیله په ټولو بني اسرائیلو کښې بله نهٔ وه. د دې نه پس عمرونه تیر شول او بیا بخت نصر د شام په ملک باندې قبضه وکړه هغهٔ په بني اسرائیلو باندې په زور بت پرستي او شرک کول غوښتل او خپل ځان ئ په هغوي باندې د خدایی درجې ته رسولو. ولې افغانه قبیلې د هغهٔ د خدایی نه انکار وکړو او هغهٔ سره ئ ډیر جنګونه او مقابلې وکړې د بخت نصر زور ډیر وهٔ او آخر د ډیر زور ظلم نه پس هغهٔ څهٔ بني اسرائیل خو د شام نه وشړل او څهٔ ئ په خپل رعیت کښې شامل کړل.

د بني اسرائیلو شړونکے قبیلې څهٔ خو کوهستان غور ته او څهٔ کوهستان فیروزه ته راوتښتیدلې او د آصف او افغانه ټولې قبیلې په دې غرونو کښې ابادې شوې. په دې غرونو کښې به هغوي د دې ملک کافرانو او مشرک باشنده ګانو سره همیشه جنګونه کول. او وروروئ د هغوي نه ټول ملک صفا کړو او هغوي ټول ئ نیست و نابود کړل. او هم په دا

شان دا قبیلې ورځ په ورځ زیاتیدلې او د خپل زور او طاقت او د بهادرۍ په وجه د دې غرونو
نه هغوي کوهستان کابل، قندهار او غزني طرف ته راخوارهٔ شول. د ملک شام نه د
راتښتیدلو په وخت څهٔ بني اسرائیل د عربستان ملک ته هم راغلل ځکه چې هغوي دا خیال
وکړو چې کهٔ چرې داؤد علیه السلام او د سلیمان علیه السلام د لاس اباد شوے د خدائے کور
زمونږ د لاس نه ووتو نو پکار دي چې د ابراهیم علیه السلام بنا کړے د خدائے کور ته ورشو.
هم په دې نیت هغوي عربستان کښې د مکې شریفې په خواوشا کښې اباد شول او د یو خدائے
عبادت ئې شروع کړو. د سلیمان علیه السلام د وفات نه پنځلس سوه کاله پس د حضرت
محمد صلي الله علیه وسلم ظهور وشهٔ. د هغوي د نبوت د ظهور نه نهٔ کاله پس خالد بن ولید
رضي الله عنه چې یو لوے صحابي او د بني اسرائیلو د قوم یو لوے سردار وهٔ او د "خالدي
افغانانو" نیکهٔ ګڼلے شي (خالدي افغانان د بنګښو قبیلې ته وائي) هغهٔ د غور پښتنو ته یو خط
ولیکلو چې په هغې کښې ئې د محمد صلي الله علیه وسلم د نبوت خبر هغوي ته ورکړے وهٔ.

هر کله چې د خالد خط دوي ته راورسیدو نو د غور د پښتنو یو څو مشران سمدستي
د مدینې منورې په لورې روان شول. د پښتنو د دې جرګې مشر قیس نومې یو سړے وهٔ چې
هغهٔ شجره طالوت علیه السلام سره اووهٔ دیرش پشتونو نه پس یو ځاے کیږي. هر کله چې د
جرګه مدینې منورې ته راورسیدله او د رسالت مآب صلي الله علیه وسلم په حضور کښې
حاضره شوه نو سمدستي ئې په هغوي باندې ایمان راوړو. رسول الله صلي الله علیه وسلم د د
جرګې ډیر قدر او عزت وکړو هغوي ته ئې ډیره دعا وکړه او د عبراني په ځاے ئې هغوي له
عربي نومونه کښیښنودل. چنانچه قیس له ئې عبدالرشید نوم کښیښنود او د ملک خطاب چ
د بني اسرائیلو ټول قوم د عبدالرشید نیکهٔ طالوت علیه السلام له ورکړے وهٔ هغه هم رسو
الله صلي الله علیه وسلم په خپله خلهٔ مبارکه عبدالرشید له ورکړو.

هر کله چې د پښتنو دا جرګه د نبي کریم صلي الله علیه وسلم نه واپس رخصتیدله
هغوي عبدالرشید له یو بل لقب د "بطان" ورکړو دا لفظ د شام د خلقو په ژبه کښې سینګاو
ته وائي. د دې لقب نه مراد دا وهٔ چې عبدالرشید د خپل قوم د خلقو سینګاوڼ وي. هر کله چ
عبدالرشید د غور غرونو ته واپس راورسیدو نو هغهٔ د خپل قوم مشري او رهنمائي په داس
شان وکړه چې لږه موده کښې هغوي ټول مسلمانان شول.

قیس عبدالرشید له خالد رضي الله عنه خپله لور هم په نکاح کښې ورکړه چې د هغ
نه عبدالرشید له خدائے تعالیٰ درې زامن ورکړل. د ټولو نه د مشر زوي نوم سرابن د دویم
ئې بټن او د دریم نوم ئې غورغشت کښیښنودو. د قیس د دې درې واړو زامنو دومره ډیر او
پیدا شو چې هر یو د یوې لویې لویې قبیلې نیکهٔ شو. د سرابن دوه زامن وو د یو نوم خرش
او د بل قرشبون وهٔ. د شرخبون پنځهٔ زامن وو او د دې زامنو نه د ابدالیانو، (درانو) د تری

شیرانو او خطران یا کتیران قبیلې پیدا شوې. د قرشبون د اولاد نه د یوسفزو، محمدزو، خلیل مومند، داؤدزي او ګګیانو قبیلې پیدا شوې. د غرغشت درې زامن وو او د هغوي نه د کاکړو، وزیرو، شیتک، توري، ختک، افریدي، شینواري قبیلې جوړې شوې.

خلاصه د دې ټول بحث دا ده چې د پښتنو مؤرخینو په خیال کښې پښتانهٔ بني اسرائیل دي. د پښتنو عام عادتونه، شکل و شباهت او طرز معاشرت هم د بني اسرائیلو په شان دے. او دا وخت هم د پښتنو په ملک کښې د بعضې بعضې کلو او غرونو نومونه د بني اسرائیلو د کلو او غرونو د نومونو په شان دي چنانچه خیبرؔ چې د عربو په ملک کښې د یهودیانو د استوګنې مشهور ځاے وهٔ د پښتنو په وطن کښې هم د افریدو او د شینوارو وغیره د یو علاقې نوم دے. صدومؔ چې د قوم یوسفزي د یوې علاقې نوم دے. هم په دې نوم د بني اسرائیلو هم یو ښار مشهور وهٔ. دغه شان لفظ جلیلؔ او جلاله د ګلیلي نه راوتلي دي چې د فلسطین د یو مشهور جهیل نوم دے. دغه شان کوه سلیمان د سلیمان علیه السلام چې د یهودیانو یولوے بادشاه او پیغمبر وهٔ په نوم باندې مشهور دے. عربو به هم په ابتداء کښې پښتنو ته سلیماني وئیل. پښتنو د خپل ځان دپاره همیشه پښتون لفظ استعمال کړے دے.

مستشرقین یورپ کښې د سر ولیم جونز Sir William Jones هم دا رائ ده چې غالباً پښتانهٔ د یهودیانو د نسل نه دي. مګر نور یورپین مستشرقین د پروفیسر ډاران آف خارکوف Dorn of Kharkov او دي آنریبل ماؤنټ ستهورټ الفنسټن The honourable Maunt Stuart Elphenstone وغیره دا رائ چې د پښتنو د اصل نسل څهٔ صحیح پته نهٔ لګي ځکه چې دا قوم د ډیر عمر نه د غور او د سلیمان په غرونو کښې (په مؤخر الذکر سلسله کښې د افغانستان ټولي جنوبي غرونه شامل دي) اباد وو. فرشتهؔ هم دا وائي چې دا قوم د موجوده افغانستان په شمال مشرقي غرونو کښې په نهمه صدی کښې اباد وهٔ. دا د عربو د ساماني خاندان د بادشاهانو د حکومت د لاندې وهٔ ولې د دې قوم کومه حصه چې په غرونو کښې وسیده هغه د همیش دپاره د ټولو بادشاهانو نه خودمختاره او خودسره وه.

## د پښتنو قبائل

د پښتنو قبیلې په دوؤ غټو حصو کښې تقسیم دي. د مغربي افغانستان پښتانهٔ او د مشرقي افغانستان پښتانهٔ. د مغربي افغانستان د پښتنو لویې قبیلې دا دي :

(۱) ابدالي

(۲) غلجي

(۳) ترین

(۴) بړیځي

(۵) کاکړ
(٦) ناصر
(۷) وردګ
(۸) پاونده

د ابدالیانو موجوده نوم درانے دے او دا نوم د دې قبیلې وړومبي زلمي احمد شاه ابدالي چې په کال ۱۷۴۷ ء کښې تخت نشین شوے وۀ ایښے وۀ او په خپله ئ د شاه در دران لقب اختیار کړے وۀ. ابدال چې د سرابن زوے وۀ او د دې قبیلې نیکۀ وۀ د هغۀ صرف یو زوے وۀ چې نوم ئ ترین وۀ د ترین دوه زامن وو یو زیرک او بل پنجپاه. د زیرک نه درې تپې جوړې شوې او د پنجپاه نه پنځۀ. د زیرک نه چې کومې تپې جوړې شوي دي د هغې شجره دا ده :

## زيرک




## پنجپاي

اسحاق زي
علي زي
نوريزي
خوگياني
مکوهي



احمدزي
اديزي
مرون زي
بروزي

خوګياني کلان
خوګياني کوچک

بدل زي
فيروزي
سبزعلي

حسن زي
الکوزي
کوره زي
چلک زي
بهادرزي
درزکي

## غلجي



د ابراهیم یا برهان په قبائلو کښې علي خیل او اسحاق هم شامل دي. د سلیمان خیلو بیا دوه شاخونه دي په یو شاخ کښې قیصر خیل او اسماعیل زي دي چې د غزني سهیل په نمر خاتهٔ اباد دي بل شاخ کښې سلطان زي یا ستاني زي او بل احمد زي دي. شیرپا هم د غلجو قبیله ده چې په کوه دامان او د دریائے کابل قطب غاړې باندې وسیړي خروټي قبیله هم د غلجو شاخ دے. مشرقي افغانستان کښې بر دراني او دامانیان دي.

## بر دراني

بر مومند، افریدي، شنواري، اورکزي، ګګیاني، یوسفزي، اتمان خیل، ترکلاني، خلیل، کوز مومند، محمدزي، داؤد زي، بنګښ، خټک. دا قبیلې په هغه ملک کښې وسیږي چې د هغه قطب قبلې ته د هندوکش غرونه او مشرق ته ئ درهٔ سندهـ او سهیل ته ئ د مالګې درنګ او د کوه سلیمان سلسله ده.

## دامانیان

په دامانیانو کښې جاجیان، توریان، عیسیٰ خیل، شیتک، بنوڅي، دوړ، خوستیان، مروت، وزیر، شیراني، زمري، دولت خیل، ګنډه پور، میال خیل، بابړ او ستوریاني هم پکښې شامل دي. دولت خیل، میان خیل،بابړ او ستوریاني د لوهاني په نوم هم بللے شي او خیسوریان هم په دامانیانو کښې ګڼلے شي. د دولت خیلو نه قبلې ته تتوري، میاني او بیټني دي. د دامان علاقه د مالګې د درنګ نه چې واخلې نو د سلسله کوه سلیمان په خوا خوا کښې سهیل طرف ته په وړدوالي کښې او پلنوالي کښې عین تر دریائے سندهـ تلې ده. د دریائے سندهـ په خواکښې کوم خلق چې اباد دي په هغوي کښې اکثر خلق بلوچ دي. د دې قبائلو نه علاوه نور هم ډیر قبائل په افغانستان او د هغې په مفتوحه ملک کښې اباد دي لکه اُزبک، ایماک، هزاره، قزلباش، ایرانیان، بلوچ، عرب، تاجک، سرهٔ کافر او نورې ډیرې غیر معروف قبیلې چې د هغوي ذکر په دې مقام په تفصیل سره کیدل مشکل دي.

## ابدالیان (درانیان یا دراني)

دا وخت د ابدالیانو د قبیلې قوم بارکزي او بارکزو کښې د محمدزي کور په افغانستان کښې برسر حکومت دے. دا قبیله په افغانستان کښې د خپل شمار او د حکومت په وجه یوه زوروره او مضبوطه قبیله ده.

د درانیانو قبیلې علاقه تخمیناً شلور سوه میله وړده او قریباً اووهٔ شلې میله پلنه ده. د دې علاقې د قطب حد د هندوکش، د کوه بابا، د کوه سفید او د کوه سیاه هغې حصې سره جنګیدلې ده چې په کومه کښې هزاره او ایماک اباد دي. د دې علاقې د قبلې حد د ایران

سرحد سره جنګیدلے دے او قبله په سهیل باندې ئ د سیستان صحرائي علاقه ده چې د بلوچستان سرحد سره یو ځاے کیږي. د سهیل حد ئ د شوره بک او خواجه عمران غرونه دي دا غرونه د دوئ د علاقې او د ترینو او د کاکړو د علاقې په حد باندې پراته دي. نمرخاتهٔ طرف ته ئ د غلجو ملک دے. د دې علاقې رقبه د انګلستان د ملک د رقبې یا د هغې نه څهٔ لږه زیاته ده. دا علاقه د غرونو نه ډکه ده او د سیندونو د خوا زمکې ډیرې زرخیزې دي. هلمند، فراه رود، خوش رود، او ارغنداب په دې علاقه کښې مشهور سیندونه دي. د هلمند سیند سهیل طرف ته د ګرم سیر علاقه ده او د ګرشک نه تر سیستانه پورې پراتهٔ ذي.

د درانو د علاقې قبلې خوا ته زمیندار وائي، دا علاقه ډیره زرخیزه ده او قطب په قبله باندې د سیاه بند غرونو سره جنګیږي. د سیاه په غرونو کښې ډیرې یخې یخې درې دي چې د وښو نه ډکې وي. د سیاه بند غرونه اګر چې د تیموني ایماکو ملکیت دے مګر دراني ګډبانهٔ په اوړي کښې دې علاقې ته ورځي. د قندهار نه چارچاپیره ملک هم ښهٔ زرخیز دے او د ارغنداب د سیند نه ډیرې ولې د دوئ ملک اوبهٔ کوي. د قندهار تماکو ډیر مشهور دي. د درانو د علاقې قطب په نمرخاتهٔ د خواجه عمران غرونه دي چې پکښې د درانو تپه اچکزي وسیږي. د خواجه عمران د غرونو سهیل طرف ته د طوبيٰ غرونه دي چې د هغې په مغربي حصه کښې هم اچکزي وسیږي. او مشرقي حصه ئ چې تر ژوب پورې پراتهٔ دي د کاکړو ده. د خواجه عمران د غرونو قطب په نمرخاتهٔ د مرغي کلے دے. احمد شاه درانے په کال ۱۷۷۳ ء کښې هم په دې کلي کښې وفات شوے وهٔ.

د درانو نه وړومبے حکومت د غلجو په قبیله کښې وهٔ او احمد شاه ابدالي د درانو وړومبے بادشاه وهٔ. احمد شاه درانے پوپلزے وهٔ او په پوپلزو کښې سدوزے وهٔ. چې د درانیانو د قبیلې مشر کور دے. پوپلزي زیات تر شهر صفا کښې د ترنک په غرونو کښې وسیږي. شهر صفا څلویښت میله د قندهار نه په نمرخاتهٔ پروت دے. څهٔ سدوزي په قندهار کښې وسیږي او لږ ډیر د قندهار د علاقې په قطبي غرونو کښې هم وسیږي. په کال ۱۷۳۱ ء کښې څهٔ وخت چې نادر شاه (د ایران بادشاه) د هرات محاصره وکړه او ډیر سخت جنګ نه پس ئ هغه ښار فتح کړو نو ډیر سدوزي ئ ملتان او ډیره اسماعیل خان ته خارج کړل. د سدوزو اکثر خلق ګډبانهٔ دي او ډیر پکښې زمینداري هم کوي.

بارکزي قبیله د سدوزو نه په شمار کښې ډیره زیاته ده. دا قبیله د قندهار په جنوبي علاقه کښې د ارغستان په غرونو کښې د هلمند سیند په خواوشا کښې اباد دي. د دې قبیلې مشرانو د سدوزو په زمانهٔ حکومت کښې هم د حکومت په ټولو معاملاتو کښې ډیر لوے اقتدار لرلو. هر کله چې احمد شاه ابدالي د بادشاهۍ دپاره منتخب کیدلو نو کوم خلق چې د بادشاهۍ دپاره امیدوار وو په هغوي کښې د بارکزو مشر حاجي جمال هم یو امیدوار وهٔ دا

حاجي جمال د سردار پائنده خان پلار او د مشهور وزير فتح خان نيکهٔ وهٔ. موجوده بادشاه سره د هغهٔ سلسله دا شان جنګيدلې ده:

د حاجي جمال خان زوی سردار پائنده خان وهٔ .د دهٔ د ورومبۍ ښځې زامن فتح خان، عظيم خان او تيمور خان د دويمي ښځې زامن پوردل خان، شيردل خان، کندل خان، رحمدل خان او مهردل خان دي. د دريمې ښځې زامن ئې دوست محمد خان، امير محمد خان او جمال خان دي. د څلورمې ښځې زامن ئې سلطان محمد خان، يار محمد خان، پير محمد خان، سيد محمد خان دي. د پينځمې ښځې زامن ئې نواب اسد خان نواب صمد خان او نواب جبار خان دي. بيا د دوست محمد خان زامن امير عظيم خان، محمد اکبر خان، امير محمد افضل خان، ولي محمد، محمد اکرم خان، فيض محمد ، غلام حيدر خان امير شير علي خان، محمد امين خان، محمد شريف خان دي. د سلطان محمد خان زامن عبدالقدوس او سردار يحيیٰ خان دي. د امير عظيم خان زوی اسحاق خان او د محمد اکبر خان زوی فتح خان دی . د سردار يحيیٰ خان زامن اسماعيل او سردار محمد يوسف خان دي او د امير شير علي خان زامن ابراهيم، عبدالله جان، محمد علي، يعقوب خان او ايوب خان دي. د امير محمد افضل خان زوی امير عبدالرحمٰن خان دی . د امير عبدالرحمٰن خان زامن حفيظ الله، امير حبيب الله خان، عبدالله خان، نصر الله خان، شمس الدين، غلام علي، محمد عمر او امين الله دي. د يعقوب خان زوی موسیٰ جان دی او د سردار محمد يوسف خان زامن عبدالعزيز، نادر شاه، هاشم خان، شاه ولي، شاه محمود دي. د نادر شاه زوی محمد ظاهر شاه دی. او د امير حبيب الله خان زوی شاه امان الله خان دی.

د بارکزو د قبيلې خلق هم زيات ګډبانهٔ دي او څهٔ پکښې زميندار هم دي. اچکزي ورومبی د بارکزو يو شاخ ګڼلے شو ولې احمد شاه د هغوي د طاقت کمولو دپاره هغوي جدا قبيله کړه. دوي د شاه عمران په غرونو کښې او د هغې د خواوشا په ميدانونو کښې وسيږي. د دوئ دا علاقه د شوراوک شمال مغربي حدونو نه شروع کيږي او زياته پکښې زرخيزه علاقه ده.

نورزي په شمار کښې د بارکزو هومره دي خو چونکې د درانو د ملک په مغربي غرونو او د سيستان د ملک د غاړې په ريګستانونو کښې خوارهٔ وارهٔ اباد دي د دي دپاره په اثر او اقتدار کښې بارکزو ته نهٔ رسي. دا قبيله اکثر ګډبانهٔ دي د دوئ علاقه اکثره د نورو درانو د ملک جنوب طرف ته پرته ده. سبزوار غرونه هم د دوئ ملک کښې دي. علي زي په زميندداور کښې وسيږي او اکثر د زميداری کار کوي. علي کوزي د علي زو خوا کښې اوسي او صرف د هلمند سيند ئې منځ کښې دی . اسحاق زي د زمينداور جنوب ته وسيږي د دوئ ګزاره اکثر په شپون توب او زميداری ده. مکوهي او خوګياني وړي وړې قبيلې دي

اکثر پکښې په قندهار کښې وسيږي او څهٔ نورزو سره ګډ دي.

د درانو ټوله ابادي تقريباً پنځلس شپاړس لکه ده دا ټول قبائل ډير بهادر، مهمان نواز او جنګجو خلق دي. د درانو په علاقه کښې لوے لوے ښارونه هرات، قندهار، ګرشک او فراه دي. بعضې مؤرخين وائي چې قندهار د ټولو نه وړومبے د ايران يو بادشاه لهراسپ اباد کړے وهٔ هم دې بادشاه ته د هرات ابادېدل هم منسوب کيږي. مګر يو قابل اعتبار طبقه د مؤرخينو دا وائي چې دا ښار سکندر اعظم شاه يونان اباد کړے وهٔ. دا زوړ ښار په خپل مقام باندې بدستور د قوم غلجي تر زمانهٔ حکومت پوري پروت وهٔ. مګر شاه حسين شاه ايران يو نوے ښار په خپله زمانهٔ حکومت کښې په دې مقام باندې اباد کړو او نوم ئې حسين اباد کښيښودو. مشهور نادر شاه بادشاه بيا د دې ښار ځاے بدلول وغوښتل او په دې وجه ئې نادر اباد ښار جوړ کړو. په آخر کښې احمد شاه موجوده ښار اباد کړو او احمد شاهي نوم ئې ورله کښيښودو او اشرف البلاد لقب ئې ورله ورکړو. مګر په عامو خلقو کښې د هغې نوم بدستور قندهار مشهور دے. بعضې خلق وائي چې دا ښار په زړه زمانه کښې د هندوانو د بادشاهی يو لوے ښار وهٔ او د دغې حکومت لوے بادشاه ګند هارا اباد کړے وهٔ او په دې وجه د دې نوم قندهار شو. د موجوده ښار حدونه احمد شاه په خپل لاس باندې مقرر کړي وو او د هغې ټوله نقشه هم د هغهٔ تجويز شده وه. د احمد شاه په زمانه کښې دا ښار د درانو د سلطنت صدر مقام وهٔ. تيمور شاه د احمد شاه زوي د قندهار نه کابل ته دارالخلافه بدله کړه. قندهار د هرات نه په رقبه کښې لوے دے. د قندهار د ابادی متعلق څهٔ صحيح اندازه نشته ځکه چې د دې ښارونو مردم شماري تراوسه پورې لا نهٔ ده شوے. مګر عام طور باندې دا مشهوره ده چې په دې کښې يو لک شل زره خلق اباد دي. د احمد شاه زيارت ته پښتانهٔ ډير د عزت او احترام په نظر ګوري. هرڅوک چې د قتل يا د حملې نه ځان ساتل غواړي نو د احمد شاه دې زيارت کښې پناه اخلي. د افغانستان بادشاه ته هم بروئ رواج دا اختيار نشته چې د هغهٔ د مقبرې نه څوک پناه ګزين راوباسي.

پښتانهٔ عام طور باندې احمد شاه دراني ته د ولي الله په نظر ګوري. هندوان هم په دې ښار کښې په کثرت سره اباد دي مګر د درانو اِبادي پکښې زياته ده. تاجک، ايماک، ايرانيان، سيستانيان او بلوچ هم په دې ښار کښې اباد دي. اُزبک، عرب ارمنيان او يهوديان هم پکښې خال خال شته.

هرات د قندهار نه قريباً څلور سوه ميله جانب غرب ته دے او لار ورته په ګرشک، فراه او سبزه وار باندې تلې ده. ګرشک د قندهار نه قريباً اويا ميله لرې دے او د هلمند د سيند په غاړه اباد دے. د ګرشک نه فراه يو سل اويا ميله دے. فراه د فراه سيند په غاړه پروت دے. سبزوار د فراه نه اويا ميله قطب ته دے. هرات د سبزوار نه درې نوي ميله د قطب په

طرف پروت دے. دا ښار تقریباً درې نیم میله قطب په سهیل پروت دے او قبله په نمرخاتۀ په
وردو د دې نه لږ زیات دے دا ښار د سلطان حسین مرزا چې د تیمور د اولاد نه وۀ په زمانۀ
حکومت کښې د علم او فضل مرکز وۀ چنانچه مولانا عبدالرحمٰن جامي چې په کال ۱۴۱۴ ء
کښې پیدا شوے وۀ او په کال ۱۴۹۲ ء کښې وفات شوے وۀ هم د دې ځاے وسیدونکے وۀ.
مولانا جامي صاحب د یوسف زلیخا، بهارستان، نفحات الانس او د هفت اورنګ مصنف
دے. بل خواجه عطاء چې د هغۀ اصلي نوم عطاء الله بن محمد الحسیني نیشاپوري چې د
روضة الاحباب مصنف دے هم د دې ښار وۀ. امیرعلي شیرواني اګرچې هغه په اصل کښې
مغل وۀ مګر هغه هم په دې ښار کښې د سلطان حسین مرزا د دربار یو بیګ وۀ. چونکې دا
ښار د حکومت دارالخلافه وه په دې وجه دې ته دا شرف حاصل وۀ چې ګڼمره عالمان او
فاضلان چې د خراسان او ترکستان په ملکونو کښې وو د سلطان حسین مرزا دربار ته
راغونډیدل. علي شیرنوائي هم په دې علماؤ کښې وۀ او د غرائب الصغر او نوادر الشاب او
بدائع الوسط او فوائد الکبر مصنف دے. علي شیرنوائي په کال ۱۴۴۰ ء کښې پیدا شوے وۀ
او په کال ۱۵۰۰ ء کښې وفات شوے دے. ملا عبدالغفور چې د مولانا جامي صاحب شاګرد
وۀ هغه هم د دې ښار وۀ او نفحات الانس باندې هغۀ شرحه لیکلې ده. په کال ۱۵۰۶ ء کښې
چې څۀ وخت بابر خراسان ته تللے وۀ چې د ملا عبدالغفور د بیمارۍ نه خبر شو نو د هغۀ د
علم او فضل په وجه د هغۀ پوښتنې له لاړو. قاضي اختیار چې د بحر مضمون مصنف دے هم د
دې ښار وۀ. میرخوند چې د هغۀ اصلي نوم میر خاوند شاه وۀ هغه هم د هرات وسیدونکے وۀ
او روضة الصفا تاریخ اتۀ جلدونه ئ تصنیف کړي دي. په کال ۱۴۹۸ ء کښې وفات شوے
دے. د دۀ زوے خاوند چې اصلي نوم ئ غیاث الدین محمد خاوند میر دے او د خلاصة الخبار
۱۴۹۸ ء او حبیب السیر کال ۱۵۲۱ ء مصنف وۀ په کال ۱۴۷۵ ء کښې پیدا شوے وۀ او
کال ۱۵۳۵ ء کښې د دهلي په خوا کښې وفات شو قبر ئ د نظام الاولیاء په خوا کښې پروت
دے.

بنائي چې د بهرام و بهروز مصنف دے هغه هم دې ښار وسیدونکے دے څۀ وخت
چې امیر نجم چې د شاه اسماعیل جرنیل وۀ په ۱۵۱۳ ء کښې پر کرش (چې د بخارا په خوا
یو ښار دے) کښې قتل عام کړے وۀ نو دے هم پکښې قتل شوے وۀ. عبدالله هاتفي چې د ملا
عبدالرحمٰن جامي خوریے وۀ هم په هرات کښې وسیدو. لیلیٰ مجنون د هغۀ مشهور مثنویاتو
کښې دي ګزرګاه چې د حضرت عبدالله انصاري مقبره ده هغه هم په دې ځاے کښې واقع ده.
امام فخر الدین رازي چې په ۱۱۵۰ ء کښې پیدا شوے وۀ او کال ۱۲۱۰ ء کښې وفات شوے
دے هم په دې ځاے کښې ښخ دے.

د هرات زوړ نوم هري وۀ او د سکندر شاه یونان په زمانه کښې یوه ډیره لویه صوبه هم

په دې نوم باندې مشهوره وه. ډېره موده دا ښار د امیر تیمور د اولاد د سلطنت دارالخلافه وه. دا ښار شیباني خان ازبک په کال ۱۵۰۷ ء کښې فتح کړے وۀ او بیا د ایران د صفوي بادشاهانو د لاندې راغے او د ایران د بادشاهانو نه دراني په کال ۱۷۱۵ ء کښې واخستو. نادر شاه په کال ۱۷۳۱ ء کښې دا بیا فتح کړو مګر احمد شاه درانے چې د پښتنو بادشاه شو نو په کال ۱۷۴۹ ء کښې دوباره قبضه کړو. په دې ښار کښې یو عظیم الشان جومات هم موجود دے چې هغه سلطان غیاث الدین غوري په دولسمه صدۍ کښې جوړ کړے وۀ. د ښار دننه خلق په مذهب شیعه ګان دي. دراني، مغل، او ایماک هم پکښې اباد دي. د هرات نه چارچاپېره ملک کښې تاجک اباد دي. په دې ښار به د سدوزو په حکومت کښې د بادشاه یو زوے په حیثیت د ګورنر وسیدو چنانچه د احمد شاه په زمانه کښې د هغۀ زوے تیمور شاه او د تیمور شاه په زمانه کښې شاه محمود په دې ښار د ګورنرانو په حیثیت وسیدل. او د هغوي نه پس حاجي فیروز الدین چې د شاه محمود ورور وۀ، ګورنر وۀ. د دې ښار ابادي تقریباً یو لک ده.

## برېڅي

برېڅي د شوره بک په علاقه کښې اباد دي. د دې علاقې قطب ته د درانو علاقه ده او سهیل ته ئې د بلوچ ملک دے. نمرخاتۀ ته ئې د خواجه عمران غرونه دي. چې روغابي او سپین تیزي پکښې مشهور دي. دا غرونه د دوئ او د پشین په مېنځ کښې دي. قبلې ته ئې د سیستان ریګستان دے جنوب ته ئې هم بلوچ د نوشکي په علاقه کښې اباد دي. نوشکي د شوره بک نه شلویښت پنځوس میله لرے دے. د لورے سیند د شوره بک علاقه کښې تللے دے او د هغې په وجه علاقه ډېره زرخېزه ده. ټوله علاقه تقریباً شپېتۀ مربع میله ده.

## ترین

برېڅو سره په خوا کښې نمرخاتۀ ته پشین دے چې د ترینو ملک دے. دا قبیله په دوؤ قبیلو کښې تقسیم ده یوه د تور ترین او بله د سپین ترین په نامه بللې شي. په پشین کښې تور ترین اباد دي. د پشین او د درانو د ملک په مېنځکښې قطب ته غرونه دي او نمرخاتۀ ته د دوئ او د کاکړو په مېنځ کښې هم غرونه دي. دا علاقه تقریباً اتیا میله قطب په سهیل ده او قریباً شلویښت میله قبله په نمرخاتۀ ده. د لورے سیند په دې علاقه کښې هم بهېدلے دے. خلق ئې اکثر زمینداران دي. په پشین کښې اکثر سیدان هم اباد دي. سپین ترین د ژاورے په دره کښې او د پشین او کوه سلیمان د منځ په میدان کښې وسېږي. د تور ترین او سپین ترین د علاقې په مېنځکښې د کاکړو د ملک یوه حصه ده.

# غلجي

د درانو د ملک نه قطب په نمرخاتهٔ د غلجیانو ملک دے. د دوئ علاقه قطب په قبله ان تر کوه هندوکش پورې تللې ده. مګر په دې علاقه کښې د کابل او غزني ترمنځه قریباً شپیتهٔ میله وړده علاقه د وردګو ملک دے. قطب ته پنج شیر سیند د دوئ او د کوهستان کابل تر منځه تللے دے. مګر دریائے پنج شیر د دریائے کابل سره د یو ځاے کیدو نه پس د غلجو علاقې پورې غاړې ته هم تللے دے. او ان تر جلال اباده پورې نمرخاتهٔ ته راغلے دے. جنوب په نمرخاتهٔ باندې د دوئ حد د وانو علاقې سره لګیدلے دے او جنوب په قبله باندې د دوئ د علاقې او د ارغستان په منځ کښې غرونه واقع دي.

د قندهار قطب په نمرخاتهٔ قلات غلزي مشهور ښار دے او قریباً ۸۵ میله په فاصله باندې پروت دے. دا د غلجو د توخي قوم صدر مقام دے. د ترنک سیند په ښي غاړه باندې پروت دے او ۵۷۷۰ فټه سمندر نه وچت دے. د قلات غلزي نه قبلې ته د ترنک د درې په خوا خوا کښې د توخي قوم اباد دے. د قلات غلزي نه نمرخاتهٔ طرف ته هوتکي وسیږي. د دوئ علاقې ته هولاتاغ غونډان او پتونے وائي. قلعه عبدالرحمٰن د دې علاقې صدر مقام دے او د غلجو بادشاهانو د اولاد لویه قلعه ده. دا د غورې مرغی په ضلع کښې واقع ده.

د هولاتاغ نه نمرخاتهٔ او قطب ته د ګراشته او د کتهه واز علاقه ده. د کتهه واز نه په جنوب نمرخاتهٔ د خروټیانو ملک دے. او د خروټیانو د ملک نه قبلې او د غزني جنوب ته د شیل ګر علاقه ده او شیل ګر نه قطب ته غزنے دے. غزنے ۷۷۲۶ فټه د سطح سمندر نه وچت دے. نههٔ سوه کاله وړومبے غزنے د یو لوے سلطنت چې د هغې یو حد د دجلې د سیند نه د ګنګا سیند پورې او بل د جیحون نه تر خلیج فارس پورې وهٔ دار الخلافه وه. دا ښار اوس یو معمولي حیثیت لري او د دې تیر شوے لوے والي اوس د هغه د موجوده شکل نه نهٔ ښکاري. د سلطان محمود غزنوي مقبره هم په دغه ځاے کښې ده. د بهلول دانا او د حکیم سنائي مقبره هم دلته ده. فردوسي هم څهٔ موده په دې ښار کښې وسیدلے دے. په دې ښار کښې مشهور څیز یو بند دے چې محمود غزنوي د غزني په سیند کښې د آبپاشي دپاره جوړ کړے دے. دا بند تر دې وخته پورې موجود دے. د دې ښار په خواوشا کښې اکثر تاجک او هزاره وسیږي او قطب ته ئې په دره کښې وردګ وسیږي. ولې نمرخاتهٔ ته او د کوه سلیمان د غرونو په خوا کښې غلجي اباد دي. د دې ښار موجوده ابادي پنځلس زره ده. ګردیز د غزني نه قطب په نمرخاتهٔ پروت دے او د علي خیلو غلجو علاقه ده. د دې ښار صرف لس زره ابادي ده. په دې علاقه کښې زدرمل او توګار هم واقع دي. چې د احمدزو او ضحاک غلجو علاقه ده. په دې علاقه کښې تاجک هم غلجو سره ګډوډ وسیږي. د کابل نه چارچاپیره سل میله زرخیزه

علاقه د غلجو او د تاجکو په قبضه کښې ده. د قندهار نه تر غزني پورې ۲۲۵ میله لار ده. د دې نه پس د کابل ښار دے چې د قندهار نه ۳۱۵ میله دے او د جلال اباد نه ۱۰۳ میله لرے دے.

د کابل ښار د موجوده افغانستان صدر مقام دے. د کابل نه تر غزني پورې ۹۰ میله لار ده. کابل ۶۵۰۸ فټه د سطح سمندر نه وچت دے. د دې ښار درې طرف ته غرونه دي. په بالاحصار کښې د ورومبنو بادشاهانو محلونه دي. دا ډیر ښکلے ښار دے. چې منځ کښې ئ دریائے کابل بهیدلے دے. چارچاپیره ترینه ډیر د میوو باغونه دي. بابر بادشاه د دې ښار په خوا کښې په یوه غونډۍ ښخ دے. د دې ښار نه چارچاپیره څلور ضلعې جختې پرتې دي. د یوې نوم بتخاک د بل نوم لوګر، بل پغمان او بل کوه دامان دے. دا ټوله علاقه ډیره زرخیزه او د میوو نه ډکه ده. پغمان د کابل قبلې طرف ته دے لوګر سهیل ته او کوه دامان د غرهٔ په لمن کښې اباد دے په دې وجه د زراعت دپاره پکښې اوبهٔ ډیرې زیاتې دي. د کوه دامان په ښار کښې او د دې خواوشا ته تاجک اباد دي چې د کابلیانو په نوم بللے شي. دې خلقو همیش د افغانستان په بغاوتونو کښې ډیره حصه اخستې ده. د درهٔ دریائے کابل نه تر جلال اباد پورې او لرې د هغې نه مخکښې ټوله د غلجو علاقه د متوازي الاضلاع په شکل کښې ده چې د هغې وردوالے قریباً یو سل اتیا میله او پلنوالے پنځهٔ اتیا میله دے. په ورومبۍ زمانه کښې غلجي په ټولو پښتنو کښې زیات مضبوط او طاقتور خلق وو. په ۱۷۱۲.۱۳ ء کښې څهٔ وخت چې بعضې پښتنو باندې د ایرانیانو او په څهٔ باندې د مغلو بادشاهي وه نو هم د غلجو قوم د میرویس غلجي د مشرۍ لاندې خپل ملک د ایران نه ازاد کړو او نهٔ ئ یواځې پښتانهٔ ازاد کړل بلکې د هغهٔ زوي میر محمود ټول ایران فتح کړو تر دې پورې چې د ایران دریم پښتون بادشاه چې په ایران کښې بادشاهي کوله د نادر شاه د لاسه د ایران نه راووتهٔ مګر ډیر غلجي تراوسه پورې د کرمان په علاقه کښې د خپلو فتوحاتو په وجه اباد دي.

د نادر شاه د فتوحاتو نه پس بیا بادشاهي د درانو لاس ته لاړه. میرویس د هوتکي د قام نه وهٔ او د هغهٔ وزیران د توخي د قوم نه وو. هوتکي قام لکه څنګه چې مخکښې ذکر شوے دے قلعه عبدالرحمٰن او د هغې خواوشا علاقه ګراشته او هولاتاغ کښې وسیږي. توخي د دوئ نه قبلې طرف ته د موکر د غرونو نه جنوب ته وسیږي. توخي په شمار کښې د هوتکیانو نه زیات دي د ترنک د درې بره حصه د توخي قبیلې په علاقه کښې ده. ترکۍ قبیله په مخور او د هغې چارچاپیره علاقه کښې پرته ده. اندړ په شیل ګر او د هغې په خواؤشا وطن کښې وسیږي. خروټیان د ګومل او د کوه سلیمان د منځ په غرونو کښې د کتّه واز نه نمرخاتهٔ ته اباد دي. علي خیل د زورمل په علاقه کښې اباد دي. د دوئ نه نمرخاتهٔ ته د کوه سلیمان وچت غرونه دي. د ګردیز او د دوئ په منځ کښې هم قطب ته د کوه سلیمان د غرونو یوه

حصه ورنوتې ده. قبلې او سهیل ته ئ د گومل حد دے. اگر چې د وانو څۀ حصه د گومل نه قطب ته تللې ده.

**سلیمان خیل:** دا قبیله د غلجیانو په قوم کښې د ټولو نه لویه قبیله ده. قیصر خیل او اسماعیل زي د غزني سهیل او نمرخاتۀ ته وسیږي او څۀ د زورمل په علاقه کښې هم علي خیلو سره شریک دي. د سلیمان خیلو د قبیلې ستاني زي یا سلطان زي ټپې د وردگو نه په قطب باندې وسیږي او احمدزي چې هغه هم د سلیمان خیلو ټپه ده د لوگر نه نمرخاتۀ ته په استامور او پیگے کښې وسیږي: ضحاک قبیله په خروار کښې وسیږي او څۀ په پغمان کښې هم اباد دي. شیرپاه چې هغه هم د غلجو قبیله ده د تاجکو سره په کوه دامان کښې او د کابلِ سیند قطبي غاړه باندې تر جلال اباده پورې اباد دي.

**وردک :** د دې علاقې قبلې ته د کوه بابا غرونه دي او باقي درې واړه طرف ته ئ غلجي اباد دي. نمرخاتۀ ته ئ د لوگر غلجیان دي او سهیل ته ئ علي خیل او قطب ته ئ پغمان دے.

**کاکړ :** د کاکړو قبلې ته د بلوچو ملک دے. سهیل ته ئ سپین ترین او نمرخاتۀ ته ئ کوه سلیمان دے، قطب قبلې ته ئ ارغستان او پشین دے. قطب ته ئ د اچکزو هغه حد دے چې کوم غلجو سره یو ځاے کیږي. د دوئ ټول وطن تقریباً یو سل مربع میله دے. سهیل طرف ته ئ درۀ بولان ده او د هغې نه هغه خوا ته قلات دے. په دې د برشور، تور مرغۍ، دنرین، توگے، حنا لویې لویې درې دي.

**کسائي :** د کاکړو شاخ دے چې د شال په دره کښې اباد دي. مگر احمد شاه دراني دا دره نصیر خان د بلوچ سردار ته د هغۀ د خدماتو په صله کښې ورکړې وه او اوس هغه د بلوچستان یوه حصه گڼلے شي اگر چې کسائي د پښتنو یوه قبیله ده. په سبي کښې چې د سیستان په میدانونو کښې پرته ده په هغې کښې د کاکړو یو شاخ پني اباد دي.

زورا، تهل، اوچوتیالے د لوني پښتنو علاقه ده . د دریائے ژوب او د درۀ بوري په منځ کښې چې کومه علاقه ده په هغې کښې هري پال، بابري، موسيٰ خیل، ایسوت کاکړ اباد دي. دا علاقه ډیره زرخیزه ده او هر طرف ته پکښې ولې او خوړونه بهیدلي دي. د قبلې د خوا کاکړ کنچوغۍ درې په خواوشا کښې وسیږي او دوئ ته سونیتي کاکړ وئیلے شي. د دوئ حد د زورکے نه تر سیونه داغ پورې تللے دے. په دره بوري کښې د کاکړو پښتنو یوه ټپه چې د ساران په نوم باندې بللے شي اباده ده. د کاکړو اکثره علاقه د غرونو او درو په منځ کښې پرته ده او د هغوي گزاره د گډو بزو او د اوښانو په ساتنه ده.

**ناصر :** د ناصر قبیلې څۀ خاص علاقه یا ملک نشته دوئ اکثر کوچیان دي په سپرلي کښې دوئ د څلورو پنځو کډو سره ځاے په ځاے د توخي او هوتکي غلجو په ملک کښې ورځې شپې تیروي. او بیا سل سل شپږ شپږ شلې کورونه یو ځاے د وښو او د اوبو په تلاش کښې

پړاؤ په پړاؤ د یو ځاے نه بل ځاے ته ځي او چې ژمے رانزدې شي نو ټول په جمع سره د ملک دامان ګرم میدانونو ته راکوز شي. د دامان میدانونو ته په راکوزیدو کښې د دوئ لار په وزیرو باندې تللې ده. د وزیرو په ملک دوئ اکثر په دوؤ ټولو کښې تقسیم شي. او دواړه په وار وار په کنجور مقام کښې چې د ګوملې په غاړه پروت دے پړاؤ کوي د وزیرو په ملک کښې د دې قبیلې اکثر جنګونه د وزیرو سره کیږي. وزیر په خپل ملک کښې په دې خلقو باندې د ډاکې او لوټ دپاره شپه ورځ حملې کوي او دوئ هم د ځان ساتلو دپاره په ښۀ شان سره تیار اوسي. هم دغه شان په جنګ او په شور شر باندې درۀ زرکني ته راوځي او د دامان په میدانونو کښې خوارۀ وارۀ شي. د دوئ ژوندون اکثر په خیمو کښې وي چې هغه ورله په هر پړاؤ کښې زنانه لګوي، زنانه ئ پرده نۀ کوي خو په نیک چلنې کښې مشهورې دي.
هر کله چې د تخت سلیمان په سوکه باندې واؤره پریوتل شروع شي نو دوئ ټول بیا رایو ځاے شي او د خراسان ملک ته روان شي. دوئ د چیلو، ګډو او د اوښانو د وړی نه ځان له خیمې او لمسي جوړوي او د چیلو د ویښتو نه غوندې هم تیاروي چې پکښې هغوي خپل اوړۀ او نور نورے سامان په خپلو ښاروؤ باندې باروي. د خپلو ګډو د څرمنو نه ځان له پوستینونه جوړوي او د ګډو بیزو د شودو نه کُچ او قُرت د خپل خوراک دپاره تیاروي. د دوئ بیزو او د اوښانو لویې لویې رمې وي.

## د افغانستان فتح شوي ملکونه

د افغانستان په فتح شوي ملکونو کښې د بلخ په علاقه کښې هزاره وسیږي، دې ته د ترکستان علاقه هم وائي. او په موجوده افغانستان کښې د مزار شریف په صوبه باندې بللے شي. د دې علاقې قطبي حد آمو او جنوب طرف ته د هندوکش مغربي حصه او د کوه بابا غرونه، نمرخاتۀ ته د بدخشان علاقه، او قبلې ته ئ ریګستان دے. د دې علاقې وړدوالے قبله په نمرخاتۀ دوه نیم سوه میله او قطب په سهیل تقریباً د سلو نه تر شپږو شلو میلو پورې دے. په دې علاقه کښې ډیر ښۀ ښۀ اسونه پیدا کیږي. د دې صوبې ډیرې ضلعې دي د دې نومونه دا دي: مزار شریف، خان اباد، میمنه، اندخوئ، شبرغان، بلخ، خلم، حضرت امام، قندوز، خوست، اندراب، تالقان مګر دا صوبه اوس په دوه حصو تقسیم شوې ده یو مزار شریف او بله میمنه. میمنه، اندخوئ او شبرغان کښې اکثر اُزبک وسیږي او ترکمان هم دې علاقه کښې استوګنه کوي.

بلخ ډیر زوړ ښار دے او د هغې چارچاپیره ملک ته د بلخ علاقه وئیلے شي. د سکندر اعظم شاه یونان په زمانه کښې د دې ښار نوم بکتیا وۀ لیکن د هغۀ نه ډیر وړومبے دا د ایران بادشاه کیخسرو چې په یورپ کښې د سائرس دي ګریټ Cyrus the Great په نوم باندې

مشهور دے دارالخلافه وه. دې ته مؤرخينو اُم البلاد هم وئيلے دے. مګر هغه زوړ شان د دې ښار اوس پاتې شوے نۀ دے. د بلخ په علاقه کښې قريباً څلور سوه کلي دي او اتلس نهرونه پکښې بهيدلي دي زمکه ئې ډيره زرخيزه ده او اوس ئې د ښار ابادي صرف لس زره ده.

خلم چې د بلخ د علاقې نه سهيل ته پرته ده دا علاقه ټوله غرونه غرونه ده تاشقرغان د دې دارالخلافه ده. د حضرت امام ضلع اوس په خلم کښې شامله شوې ده. د قندوز په علاقه کښې سهيل ته اګر چې د هندوکش د غرونو حصې هم راغلي دي مګر ډيرې ښکلې او زرخيزه درې هم پکښې شته. ميداني علاقه ئې ډيره زرخيزه ده او د قندوز ښار ډير ښکلے او د باغونو نه ډک دے. خوست او اندراب اوس قندوز سره شامل شوي دي او اکثر پکښې تاجک اباد دي. تالقان د بدخشان د علاقې په خوا کښې دے.

د بلخ په ټوله علاقه کښې اکثر اُزبک اباد دي. اُزبک قريباً ۱۵۰۱ء کښې اول ځل د دريائے سيحون نه چې د بابر عمر هغه وخت نولس کاله وۀ د شيباني خان په مشرئ کښې راپورې وتل او د امير تيمور د اولاد يعنې بابر او د هغۀ د ورونو نه د بخارا، خوارزم او د فرغانې علاقه واخستله. بابر ترينه کابل ته راوتښتيدو. د يونس خان اولاد سلطان محمود خان او سلطان احمد خان چې د بابر ماماګان وو هغوي ئې قتل کړل او ټول ملک ئې تالا ولا کړو. اوس هم هغوي علاوه د بلخ د علاقې نه د خوارزم، بخارا او فرغانې علاقو کښې اباد دي. دا په حقيقت کښې تاتاري النسل خلق دي او د ترکو د قوم يو شاخ دے اګر چې د مغربي ترکو نه د هغوي ژبه په بيل قسم ده. اُزبک په اصل کښې چيني تاتاريان دي.

د پښتنو او اُزبک قبائلو غټ فرق دا دے چې په پښتنو کښې د بادشاهي طريقه ټوله جمهوري (د جرګې) ده مګر د اُزبکو طرز حکومت شخصي (د يو کس) دے. د افغانانو بادشاه هر کار د اولس په مشوره او د جرګې په مصلحت کوي. د دې خلقو شکل و شباهت هم د پښتنو نه جدا دے د دوئ تندي پلن، د مخ هډوکي وچت، ږيرې نرئ او سترګې وړې وي. دا خلق د شريعت ډيره زياته پابندي کوي او رواج نۀ مني. دوئ سورلئ کښې ډير تکړه دي. د غريب نه تر اميره پورې ټول سورلي کوي او قوم ئې ډير بهادر دے. د بلخ په علاقه کښې اُزبکو نه علاوه تاجک هم وسيږي او ډير عرب هم پکښې اباد دي.

## ايماک او هزاره

ايماک او هزاره قومونه د کابل او هرات په منځ کښې چې کوم غرونه دي يعنې د کوه بابا، کوه سفيد، کوه سياه په نومونو بللے شي. او مجموعي نوم ئې د غور کوهستان دے، کښې اباد دي. د دوئ قطب ته د اُزبکو ملک دے او د درانو او د غلجو قوم جنوب طرف ته

پروت دے. د دوئ ملک تول د غرونو نه ډک دے او درې سوه میله وږد او دوه سوه میله پلن دے. د پښتنو قومونه په ابتدا کښې په دې غرونو کښې اباد شوي وو او د دې ځاے نه بیا د افغانستان په نوره علاقه باندې خوارهٔ شوي دي. مؤرخین وائي چې دا دواړه قومونه تاتاري النسل دي او د مغلو اولاد دے. د دوئ ژبه فارسي ده. ابوالفضل وائي چې دا قومونه د مغلو د بادشاه منکو خان چې د چنگیز خان نمسے وهٔ سره راغلي وو. ایماک په مذهب کښې سنیان دي او هزاره شیعه ګان دي. د عادتونو، خوئ بوئ او شکل شباهت نه ئ معلومیږي چې دا یو نسل نهٔ دے. ایماک د دې غرونو په مغربي او هزاره ئ په شرقي حصه کښې وسیږي. د ایماک قوم څلور تپې دي. تیموني هزاره (دا د نورو هزارو نه جدا قوم دے) تیموري، زوري. د تیموریانو دوه تپې دي (کیچاق، ددزر) د هزاره دوه تپې جمشیدي او فیروزکوهي دي د ایماک قوم مشر ته کدخدا او د کدخدا نه مشر ته خان وائي. د هزاروؤ مشهورې قبیلې دا دي: (۱) دهٔ زنګي (۲) ده کنډي (۳) جوغوري (۴) پولاده. هزاره د ککر، کاره باغ او د غزني قبلې طرف ته اباد دي او څهٔ په کابل کښې هم وسیږي. بامیان ښار هم د دوئ په ملک کښې دے. دلته په څهٔ زمانه کښې بتان هم بیاموندې شوي وو، په دې وجه دا خیال کیدے شي چې په دې وطن کښې د بُدهـ مذهب خلق اباد وو. قزلباش د ایران د فوځ د خلقو هغه اولاد دے چې کوم د ایران بادشاهانو او د پښتنو بادشاهانو سره نوکران وو. دوئ د افغانستان په سیاسیاتو او جنګونو کښې ډیره لویه برخه اخستې ده. تاجک اکثر د درانو په ملک کښې په حیثیت د همسایه ګانو وسیږي.

## بر دراني

د بر درانو علاقه د هندوکش د مشرقي حصې نه جنوب طرف ته شروع کیږي او د کوه سلیمان د غرونو پورې رسي. دې کښې د کافرستان غرونه، باجوړ او د پیښور میدانونه هم شامل دي. په دې تولو قبیلو کښې د یوسفزو قبیله په شمار کښې ډیره زیاته ده. قبله په قطب باندې ئ د اتمان خیلو غرونه حد دے قطب ته ئ د هندوکش غرونه دي او نمرخاتهٔ ته ئ دریائے سندهـ او د هغې ګس لاس ته علاقه ده. او جنوب ته ئ د دریائے کابل غاړه ده. قبلې ته ئ هشنغر دے. د دې قام دوه قبیلې دي یو ته یوسفزي او بل ته مندڼ وائي. یوسفزي د پنجکوړې چې په هغې کښې دیر هم شامل دے. سوات، (کوز او بر) بونیر، او دمتوړ په ملکونو اباد دي. دمتوړ د دریائے سندهـ نه پورې غاړه د هزارې په ضلع کښې دے.

مندڼ، دریائے کابل او دریائے سندهـ چې کوم ځاے یو ځاے کیږي د هغې نه په قطب تر چملې پورې او قبلې ته تر هشنغر پورې اباد دي. په دې کښې چمله د مردان او د صوابی

علاقه شامله ده. د مردان د علاقې قطب ته سوات او بونیر پراته دي. د بونیر او سوات په منځکښې لوړې غرونه دي او دغه شان د بونیر او د چملې په منځ کښې هم غرونه شته دې.

سوات په دوؤ حصو کښې تقسیم دے یو ته بر سوات او بل ته کوز سوات وائي. بر سوات قریباً شپیتهٔ میله وږده دره ده او په بعضې مقاماتو کښې د پنځو نه تر لسو میلو پورې پلنه ده او ډیره زرخیزه ده. کوز سوات هم دومره وږد دے خو پلنوالے ئې زیات دے. دریائے لنډے د دواړو علاقو په منځکښې بهیږي. د بر سوات نهر هم د دې سیند نه راجدا شوے دے چې د صوابۍ او د مردان علاقه پرې سیراب کیږي. د پنجکوړې او د دیر علاقه د سوات نه قطب په قبله ده، دیر پکښې مشهور ښار دے چې د پنجکوړې دریاب په دې کښې بهیدلے دے. د سیند خواوشا علاقه ډیره زرخیزه ده او غرونه ئې هم ډیر اباد دي. بونیر د غرونو نه ډک دے او بیشماره ډیرې درې پکښې دي. برندو پکښې مشهور خوړ دے او دربند سره دریائے سندهـ سره یو ځاے کیږي.

ګدانهٔ د یوسفزو یو شاخ دے او د دریائے سندهـ په دواړو غاړو باندې پراتهٔ دي او دمتوړ د دوئ په علاقه کښې دے. چمله د بونیر په جنوب باندې پرته ده او یوه لویه دره ده. چینګلی پکښې لوے کلے دے هندوستاني مجاهدین هم په دې دره کښې اوسي.

د مردان علاقه د چملې قبلې ته ده او د امبیلې کنډاو باندې ورته د مردان نه لار تللې ده. د چملې نه سهیل ته د صوابۍ علاقه ده او د صوابۍ نه په قبله د مردان علاقه ده. د صوابۍ او د مردان په علاقه کښې ماسوائ د قطبي حدود نه نور غرونه نشته.

یوسفزي په دې ملک کښې د څهٔ دپاسه څلور سوه کالو نه اباد دي. دا قوم اصل باشنده ګان د ګارو او د نوشکي علاقې ذي. نوشکي د سیستان په علاقه کښې د دشت لوط په غاړه باندې واقع دے. دا قبیله په حقیقت کښې د خوکئ یا خاشي قوم یو شاخ دے چې نور شاخونه ئې ګګیاني او محمدزي وو. قریباً د دیارلسمې صدی عیسوي په آخر او د څوارلسمې صدی عیسوي په ابتدا کښې دا څلور واړه قبیلې نورو قومونو د خپلو علاقو نه وشړلې او د هغه ځاے نه دوئ څهٔ په خراسان او څهٔ د کابل په خواوشا کښې اباد شول. د یوسفزو قبیلې ورو ورو په لږه موده کښې دومره زور پیدا کړو چې الغ بیګ مرزا چې د ابو سعید مرزا زوے وهٔ او د امیر تیمور د اولاد نه وهٔ او د بابر بادشاه ترهٔ وهٔ، د کابل د تخت اخستو دپاره د هغوي نه امداد وغوښتو. په کابل باندې د ډیرې مودې نه د تیمور د اولاد حکومت وهٔ ولې د ابوسعید مرزا د مرګ نه پس د کابل بادشاهي د هغوي نه لاړه. دې قبیلې الغ بیګ د کابل په تخت باندې کښینولو. الغ بیګ چې تخت نشین شو نو د دې قبیلو ئې ډیر عزت او قدر وکړو او خلعتونه او ماجبونه ئې ورکړل. مګر چونکې دا قبائل ډیر خودمختار ا

سرکش وو او د بادشاه حکم به ئ نهٔ منلو. د دې دپاره الغ بیګ چې طاقت ئ اوس زیات شوے وهٔ او د خپل وطن نه ورله ډیر مغل هم رارسیدلي وو هغهٔ په دې وجه د یوسفزو نه د ځان خلاصولو کوشش شروع کړو. اول هغهٔ د یوسفزو او د ګګیانو په منځ کښې د بې اتفاقی او د ناچاقی د پیدا کولو کوشش وکړو چې په دې کار ونهٔ شو نو آخر ئ پرې د خپل فوځ سره حمله وکړه، په هغې کښې خو اول الغ بیګ شکست وخوړو ولې د صلحې په یوه جرګه کښې چې کوم وخت د یوسفزو خانان هغهٔ سره په جرګه کښې ناست وو هغوي ئ په دوکه سره ټول قتل کړل، د هغوي کورونه ئ تالا کړل او د کابل د علاقې نه ئ راوویستل. یوسفزي په دې وجه ډیر تنګ شول او د پیښور طرف ته رااروان شول په دغه زمانه کښې لغمان د ترکلانو په قبضه کښې وهٔ بنګښ او افریدي په خپلو موجوده علاقو کښې پراتهٔ وو مګر د ننګرهار او ټوله د پیښور علاقه چچ او هزاره او د هغې نه نمرخاتهٔ ته علاقه عین تر جهلم پورې د دله زاکو پښتنو په قبضه کښې وه. د دله زاکو د علاقې او د هندوکش د غرونو تر منځه د دریائے سندهـ دواړه طرف ته د سوات سلطنت وهٔ، چې د هغوي بادشاه سلطان ویس وهٔ. د سواتیانو بادشاهي د باره مولې نه چې د کشمیر په علاقه کښې د جهلم په غاړه پرته ده د دریائے سوات د غاړې پورې وه. یوسفزي چې وړومبے راورسیدل نو د دله زاکو میلمانهٔ شول نو هغوي ورله د دوآبې علاقه چې د دریائے کابل او د دریائے سوات په منځ کښې پرته ده او قطب قبلې ته ئ د مومندو غرونه دي د استوګنې دپاره ورکړه. ولې هر کله چې د هغوي نورې ټبرې او کورونه هم راغلل او په شمار کښې زیات شول نو د دوآبې علاقه په هغوي تنګه شوه په دې وجه هغوي د باجوړ ملک د دله زاکو نه په زور واخستهٔ او بیا ئ دومره جنګونه ورسره وکړل چې ورو ورو ئ د دریائے کابل نه قطب طرف ته ټوله علاقه په زور لاندې کړه دوئ بیا سلطان ویس ته هم وراړم شو او هغه ئ د خپلې علاقې نه وویستو هغه د کافرو وطن ته وتښتیدو او په هغه ځاے کښې هغهٔ نوې بادشاهي خان له پیدا کړه. او تر ډیرې مودې پورې د هغهٔ اولاد هغلته حکمران وهٔ. د دې جنګونو په دوران کښې الغ بیګ مرزا وفات شو. عبدالرازق مرزا د هغهٔ زوے چونکې وړوکے هلک وهٔ او بابر د خپلو دښمنانو او د اُزبکو د لاسه د خپل پلار نیکهٔ ملک نه راوشړلے شو. په دې وجه د الغ بیګ مرزا د مرګ نه پس بابر د کابل بادشاهي خان له واخسته.

د دله زاکو په مرسته هغهٔ څو څو واره په یوسفزو حملې وکړې او ډیر خلق ئ ترینه قتل کړل. په باجوړ ئ قبضه وکړه، کاټلنګ او شهباز ګړې پورې د لوټ دپاره راغے او د صوابی په علاقه کښې ئ هم خپل فوځونه بوتلل. مګر په دې ټولو جنګونو کښې به یوسفزي په غرونو کښې پټ شول او هیچرې هم مکمل طور باندې فتح نهٔ شول. آخر دا چې د یوسفزو سره د خپلولی پیدا کولو دپاره بابر بادشاه د هغوي د خان ملک شاه منصور د لور سره نکاح

وکړه چې د هغې نوم بې بي مبارکه وهٔ. هر کله چې دوئ د دله زاکو نه دا ټول ملکونه واخستل نو هغه ئ په خپلو کښې ویش کړل په دغه زمانه کښې محمدزي چې د خراسان په ملک کښې اباد وو راغلل او هشنغر ئ هغوي له ورکړو.

ګګیاني چې د کابل په خوا وسیدل هغوي هم بابر د خپلې علاقې نه راشړلي وو یوسفزو دوئ له د دوابې علاقه او د باجوړ څهٔ حصه ورکړه. د باجوړ په علاقه کښې اوس ګګیاني نشته دے. اتمان خیلو له ئ د باجوړ نه نمرخاتهٔ ته علاقه ورکړه په باجوړ کښې ترکلاني اباد شول او د پنجکوړې، سوات، بونیر چملې، مردان او د صوابی په علاقه کښې یوسفزي او مندڼ اباد شول.

یوسفزي په دریو حصو کښې تقسیم دي اکوزي، ملیزي، لویزي. ملیزي او اکوزي په سوات او پنجکوړه کښې اباد دي او لویزي په بونیر کښې اباد دي. جدون قوم هم د یوسفزو یو شاخ دے د پښتنو په ټولو قبیلو کښې د یوسفزو قبیله ډیره زیاته جمهوریت پسنده ده او د هرې قبیلې ملک یا خان د خپلې قبیلې د مصلحت یا مشورې نه بغیر د څهٔ کار کولو اختیار نهٔ لري او هروخت په خپلو کښې جنګونه کوي او په دې شان د خپلو اندروني بې اتفاقو په وجه دوئ خپله خودمختاري ضائع کوله او هم په دې وجه د دیر خان په خپلې قبیلې باندې د بادشاهی رسوخ حاصل کړل. او دغه شان میانګل صاحب چې د سوات د اخون صاحب نمسے وهٔ د سوات او د بونیر په علاقه کښې بادشاه شو.

په پخوا زمانه کښې ما سوائ د پنجکوړې او د دیر د علاقې نه د یوسفزو په یوه تپه کښې داسې خان نهٔ وهٔ چې هغهٔ په خپله قبیله باندې د حکومت کولو اختیار لرلو. صرف په پنجکوړه کښې د دیر په ښار کښې قاسم خان د خپل دولت او لیاقت په وجه د ملیزو د قوم خاني مشري او حکومت حاصل کړے وهٔ. دے قاسم خان خپل اثر داسې زیات کړے وهٔ چې د کافرو په ملک باندې ئ لښکرې کړے وے او د هغوي نه ئ خراج اخستے وهٔ او د قاشقار په بادشاهانو باندې ئ هم حملې کړے وے او د هغوي نه ئ هم خراج اخستے وهٔ او شکست ئ ورله ورکړے وهٔ. د یوسفزو په ټولو قبیلو کښې صرف هم هغهٔ ته د ملیزو د ترلو پرانستلو او وژلو اختیار حاصل وهٔ. په دې وجه د هغهٔ په علاقه کښې د تپو جنګوفه په نسبت د نورو قبیلو کم وو.

په مندڼ کښې مردان، هوتي او صوابی لوے لوے ښارونه دي. په بونیر کښې ډګر او د پیر بابا زیارت مشهور مقامات دي. په بر سوات کښې سیدو او مینګوره مشهور مقامات دي. په کوز سوات کښې الله ډنډ، بټ خیله، چکدره، ملاکنډ او تانه، درګی، سخاکوټ مشهور مقامات دي. په پنجکوړه کښې دیر لوے ځاے دے.

د یوسفزو قام علاوه د دې علاقو نه د هندوستان په بعضې بعضې حصو کښې هم اباد

دي. په مقابله د مغربي پښتنو مشرقي پښتانهٔ زيات هندوستان ته راغلي وو او د دې وجه دا وه چې د مغربي پښتنو زيات ګزران د ګلو، اوښانو او نورو څناورو په ساتلو باندې وهٔ او ملک ئې زيات ګنجان اباد نهٔ دے. د دې دپاره هغوي د کر دپاره زمکه کافي او څرولو دپاره غرونه او درې وافرې وے. د دې نه علاوه ودونه په کافي لوے عمر کښې کوي د دې وجې ابادي ئې ډيره زر نهٔ زياتيږي. د دې نه برخلاف د مشرقي افغانستان د اکثرو پښتنو ګزاره په زميداري او په کاشت باندې وه او چونکې مقابلتاً دوئ ودونه په کم عمر کښې کوي د دې دپاره د هغوي د کاشت زمکه په مقابله د هغوي د ابادي کميږي. هم دغه وجه ده چې پښتنو وقتاً فوقتاً د هندوستان طرف ته توجه کړې ده. فرخ اباد، بهوپال، کړنال، او د روهيلکنډ علاقه د يوسفزو پښتنو نه ډکه ده. نواب رامپور په اودهـ د پښتنو مشر کور دے. د بريلي ښار هم د دوئ نه ډک دے او نګينه کښې هم د دوئ ډيره ابادي ده.

سل کاله وړومبے د دوئ ژبه او عادتونه ټول د بر درانو په شان وو مګر په هندوستان کښې د وسيدو په وجه ورو ورو دوئ ژبه بدله کړه. په دوئ کښې د بر درانو د ازادئ او د جمهوريت جذبه تر ډيرې مودې پورې پرته وه او انګريزانو سره ئې د هندوستان د قومونو په نسبت زيات خونريز او په بهادرئ جنګونه کړي دي. چونکې په خپل ملک کښې هم دوئ د زراعت شوقيان وو په دې وجه ئې د روهيلکنډ د ملک نه يو جنت جوړ کړے دے. انګريزانو په خپلو مختلفو کتابونو کښې د روهيلو د بهادرئ شجاعت او د محنت ډير تعريفونه کړي دي. د انګريزانو مشهور سياستدان برک په ډير فصاحت سره د دوئ د قابليت او بهادرئ تعريف کړے دے. په دې علاقه کښې دوئ ښهٔ ښهٔ ښارونه او لوے لوے کلي اباد کړي دي. څرنګ چې ذکر شوي دي بريلي او نګينه هم د دوئ د لاسه اباد دي.

باجوړ د ترکلانو يا ترکانړو ملک دے. د دوئ د علاقې قبلې ته د هندوکش جنوبي غرونه دي. قطب ته ئې د هندوکش او د اتمان خيلو غرونه دي. او نمرخاتهٔ ته ئې د اتمان خيلو غرونه جنګيدلي دي او په منځ کښې پنجکوړې ته دره تلې ده. سهيل طرف ته ئې د بر مومندو غرونه دي. د باجوړ ملک لوړ ژوړ ميدان دے او قريباً ۲۵ ميله وړد قبله په نمرخاتهٔ او قطب په سهيل دولس ميله پلن دے. د چارچاپيره غرونو په وجه په دې ملک کښې ډيرې ښکلې ښکلې درې هم شته. او دا ملک د پيښور د علاقې په شان زرخيز دے. ناوګی او باجوړ مشهور مقامات دي. د پنجکوړې او د باجوړ د ميدان په منځ کښې د باړوې دره ده اګر چې باجوړ د ترکلانو ملکيت دے مګر په بر غرونو کښې قطب او قبلې طرف ته کافر وسيږي چې هغوي اوس مسلمانان شوي دي او ميدان کښې رودباريان وسيږي . دا نوم هغوي هر هغه سړي ته اخلي چې څوک ترکلانے وي. د سوات او د باجوړ په منځ کښې د اتمان خيلو غرونه دي.

د اتمان خیلو ملک اکثر د غرونو نه ډک دے خو د باجوړ په خوا کښې څۀ میداني علاقه هم شته او څۀ علاقه ئې کوز سوات سره هم شته. د دې قوم ځوانان ډیر وچت، ښکلي او مضبوط وي. ښځې په پښتو کښې د سړو سره کار کوي. د اتمان خیلو د غرونو نه قبله په جنوب د بر مومندو ملک دے. د دریائے کابل نه قطب په قبله غرونه او میدانونه هم د دوئ دي. د دوئ ملک تړول کاڼي او ګټې دي او ډیر لږ ملک پکښې زرخیز دے. اګر چې غرونه ئې یخ دي مګر میدانونه ئې ګرم دي او ګرم بادونه پکښې چلیږي. د شبقدر نه جلال اباد ته د کرپې په دره باندې لار شته او دا تړوله لار د مومندو په علاقه کښې تللې ده. لال پوره، کامه او ګوشته د دوئ په علاقه کښې لوے لوے کلي دي. د لال پورې او د کامې علاقه پکښې زرخیزه ده او د دې موموندان اکثر زراعت کوي. د جلال اباد په خوا کښې شنواري، غِلجي او مومند هم وسیږي. د بر موموندو دوه خیلونه کوچیان دي او د ګډو بیزو او اوښانو په ساتلو باندې ګزاره کوي. دوئ په سپرلي کښې سره د خپله ماله او د کډو خراسان طرف ته د هلمند سیند خوا اوشا ته ځي. د موموندو نه قبله په سهیل د افریدو او د شنوارو علاقه ده. دا خلق د درۀ خیبر نه قطب او د سهیل په غرونو کښې وسیږي. د دوئ ملک د دریائے کابل د ښی غاړې نه د پیښور او د جلال اباد د علاقې په منځ کښې شروع کیږي او جنوب طرف ته په غرونو غرونو کښې ان د بنګښو تر ملک پورې ځي. نمرخاتۀ ته ئې د پیښور علاقه ده. د خیبریانو درې قامونه دي چې هر یو د بل نه جدا او خودمختار دے د دوئ نومونه شنواري، افریدي او اورکزي دي.

شنواري په شمار کښې د نورو دوؤ قبیلو نه کم دي او د درۀ خیبر نه قطب طرف ته غرونو کښې وسیږي. د درۀ خیبر او د هغې د حفاظت د ضروریاتو په وجه باندې دا قبائل ډیر لوے سیاسي اهمیت لري. قریباً هر یو حمله آور چې د قبلې د طرف نه ئې په هندوستان حمله کړې ده په درۀ خیبر تیر شوے دے. د دې قبائلو د لوټ مار د عادت نه ئې ډیر تکالیف او نقصانات وچت کړي دي. دا قامونه ډیر بهادر او سرتیزه دي او د قدیم الایام نه خودمختاره ژوند تیروي. قریباً قریباً د هر یو بادشاه نه دوئ د ابتدا نه مواجبونه او پنشنونه اخستي دي. ډاکه او لوټ هم کوي. د خیبر دره ۲۵ میله وږده ده او د څلور سوؤ ګزو نه تر شپاړس سوؤ ګزو پورې پلنه ده. د دې لار اکثر په خوړونو کښې تللې ده. او اوس پکښې انګریزانو دوه پاخۀ سړکونه او یوه د ریل پټړۍ جوړه کړې ده. دواړه طرف ته د دې درې نه وچت وچت غرونه دي چې هغې باندې د لارې د حفاظت دپاره اوس انګریزانو څوکۍ مقررې کړې دي. دا خلق د میزرو څپلۍ په ښنو کوي او د خپلې ازادۍ ساتلو ډیر مشتاق دي. ښۀ اعلیٰ اسلحه د دوئ د غریب نه غریب سړي سره وي خو اکثر ئې په خپلو اندروني جنګونو کښې استعمالوي. دغه حال د بر موموندو هم دے. په یخنۍ کښې دا خلق د پیښور او د کجورۍ

میدانونو ته راکوزیږي. دوئ ډیر ښه باز دي او په خپلو غرونو کښې ډیر لږ تعداد کښې د ډیرو لویو فوځونو مقابله هم کولے شي. د یوسفزو نه سهیل طرف ته د خټکو او قبلې ته محمدزي دي. د محمدزو نه قبلې ته ګګیاني دي. د ګګیانو نه او د محمدزو نه سهیل طرف ته داؤدزي دي. د داؤدزو نه سهیل طرف ته خلیل دي او د خلیلو نه سهیل ته کوز مومند او خالصه ده.

محمدزي او ګګیاني لکه څرنګ چې وړومبے ذکر شوے دے د یوسفزو سره د دریائے کابل قطب طرف ته او د یوسفزو نه قبلې طرف ته اباد دي. محمدزي په شمار کښې د ګګیانو نه زیات دي. د محمدزو ملک ته هشنغر څګه وائي چې په دې کښې اتۀ مشهور کلي دي او د ګګیانو ملک ته دوابه څکه وائي چې د دوؤ سیندونو منځکښې ملک دے.

مومند، خلیل او داؤدزو ته غوریا خیل وائي. قریباً د کال 1450ء خواوشا کښې دوئ د غزني قبلې ته د ترنک سیند په خوا کښې وسیدل. بابر په خپل تزک کښې د دې قبیلې ذکر په کال 1507ء کښې کوي او د هغوي ذکر د مشد او سمکانه کلو په خواوشا کښې کوي. دا کلي د تحقیق کولو نه پس معلومیږي چې د غزني سهیل ته واقع دي. هر کله چې بابر د غلجو د ملک د تقسیم دپاره په کال 1507ء کښې روان شو او د سرده په مقام باندې کوز شو (سرده 25یا 30میله د غزني نه سهیل ته ده) نو بابر وائي چې ماته خبر وشو چې د مومندو لویې لویې قبیلې په مشد او سمکانه کښې پرتې دي. امیرانو ماته ووئیل چې د دوئ لوټ کول پکار دي. مګر بابر وائي چې ما ورته ووې چې مونږ خپل رعیت ته نقصان ورکول مناسب نۀ ګڼو. دا قبیلې د کامران چې د بابر زوے وۀ د هغۀ په زمانه کښې پیښور ته راکوزې شوې او د کامران په امداد سره ئې دله زاک پښتانۀ دریائے سندھ طرف ته وشړل. چونکې دا خلق په میدانونو کښې وسیدل په دې وجه حکومت په دوئ باندې وقتاً فوقتاً په نسبت د یوسفزو زیاتے، زور او ظلم کولو. دا خلق د یوسفزو د قبائلو نه نسبتاً زیات مهذب او خوش اخلاق دي. د دوئ په علاقه کښې پیښور ډیر لوے ښار دے چې د پښتنو په زمانۀ حکومت کښې د شاه کابل د ژمي د رهائش ځاے وۀ. د شاه شجاع سدوزي دا ښار بالخصوص ډیر خوښ وۀ په حقیقت کښې بر مومند او کوز مومند یو خلق دے مګر دا وخت په هغوي کښې هیڅ تعلق نۀ دے پاتې شوے. په چمکنو کښې د میان عمر صاحب زیارت دے چې د احمد شاه ابدالي پیر وۀ. خلیل او داؤدزي هم دوئ سره راکوز شوي دي. داؤدزي په شمار کښې د خلیلو نه زیات دي.

**خټک** : د خټکو علاقه ډیره لویه ده. قطب ته ئې دریائے کابل دے او د دریائے کابل نه سهیل ته ان د مالګې تر درنګ پورې علاقه ده. وږدوالے ئې تقریباً سل میله او پلنوالے ئې سنځوس میله دے. نمر خاتۀ ته ئې اباسیند پوله ده مګر د سیند نه پورې غاړه هم خټک شته.

مکد پکښې مشهور مقام دے. قبلې ته ئ خليل، مومند، افريدي، اورکزي او بنگښ دي او جنوب طرف ته ئ بنو او د دامان کوهاني پښتانهٔ دي. خټک په دوؤ حصو کښې تقسيم دي يو قطبي او بل جنوبي. د جنوبي خټکو ملک ټول غر دے او د شمالي خټکو ملک کښې اکر چې ميدانونه شته مگر بيا ئ هم ټوله زمکه کانيزه ده دا غرونه بالکل غير اباد او سرهٔ سرهٔ گټهان دي او بغير د مالگې د اوبو نه تر ډير لرې لرې پورې خوړې اوبهٔ هم نهٔ شي بياموندې. په جنوبي درو کښې ساغري او بارک خټک وسيږي. مالگين، لاچى، ټيري، لتمبر، کرک پکښې مشهور کلي دي. د ټيري په خوا کښې مالگه وځي. په شمالي خټکو کښې اکوړے او ډنگرزي مشهور کلي دي. د کاکا صاحب عليه الرحمة زيارت هم په خټکو کښې دے.

**بنگښ** : د افريدو او اورکزو نه سهيل ته پراتهٔ دي. د دوئ د علاقې نه نمرخاتهٔ او سهيل په نمرخاتهٔ خټک دي او جنوب ته وزير دي او قبلې ته ئ توري دي. د دوئ ملک د يوې لويې درې په شکل کښې دے. د دوئ ميداني علاقه زرخيزه ده. ميداني علاقې ته کوز بنگښ وائي او د غرونو علاقې ته بر بنگښ وائي. د کوهاټ ښار هم د بنگښو په علاقه کښې دے. د فرخ اباد نوابان د بنگښو د قام نه دي. هنگو او ټل پکښې لوے لوے کلي دي.

**توريان** : د بر بنگښ نه قبلې طرف ته توريان پراتهٔ دي. دوئ ټول شيعه گان دي او د بر بنگښ څهٔ حصه هم شيعه گان دي. د توريانو او د بنگښو يو شان ملک دے او ميداني علاقه ئ زرخيزه ده. هم په دې دره کښې لر. قبلې طرف ته جاجيان وسيږي. دوئ سنيان دي. د دوئ دره ان تر کوه سليمان د سلسلې پورې تللې ده. ملک ئ د توريانو نه تنگ خراب او زيات يخ دے. وړومبی زمانه کښې د سندهـ نه تر کابل پورې د جاجيانو په ملک کښې او د کوه سليمان په خوا د غزني نه قطب په نمرخاتهٔ لار تللې وه. جاجيان او توريان په بر درانو کښې شامل نهٔ دي بلکې د دامان په قبائلو کښې دي د دوئ نه پس ته د دامان نور قبائل شروع کيږي.

**عيسيٰ خيل** : د عيسيٰ خيلو ملک د دريائے سندهـ نه راشروع کيږي تقريباً ديرش ميله وړد او دولس ميله پلنه علاقه ده. د دې علاقې باقي درې طرف ته غرونه دي او يو طرف ته ئ دريائے سندهـ دے. ډيره زرخيزه د اوبو نه ډکه او گنجان اباد علاقه ده. هر طرف ته پکښې نهرونه او ولې بهيدلې دي او په هر کلي کښې بيشانه ډيرې ونې دي. په اباسيند کښې هم ډير ټاپوگان د دوئ ملکيت دے او څهٔ قومونه د سيند نه پورې غاړه هم اباد دي. د عيسيٰ خيلو د غرونو نه قبلې طرف ته شيتک وسيږي او د هغوي نه قبلې طرف ته د بنو ملک دے. چې د کرمې د سيند نه اوبهٔ کيږي. د بنو ملک هم ډير اباد او زرخيز دے. د بنو نه بره د دوړو دره ده چې ان تر جدرانو د علاقې پورې تللې ده او حد ئ کوه سليمان پورې جنگيدلے دے. دا ډير گنجان اباد ملک دے. د دوړو نه قطب ته د خوست ملک دے چې د کرمې او د دوړو په

منځکښې دے. د خوست نه نمر خاتهٔ ته د درګی علاقه ده چې پکښې تني وسيږي.

**مروت :** د مروتو ملک شګلن او خشک دے او د زراعت دپاره د هغوي صرف په باران باندې ګزران دے. د دوئ ملک قريباً پنځهٔ ديرش مربع ميله دے او د بنو نه د دريائے سندهـ تر ميدانونو پورې تللے دے. د دوئ په خوا کښې د غرونو او د دريائے سندهـ په منځکښې خيسوريان قبيله اباده ده. مروتو نه سهيل طرف ته د کوه سليمان په خوا خوا کښې د دامان جنوبي حصه ده. په دې کښې ميانخيل، بابړ، ستوريان، عيسيٰ خيل، ګنډه پور او خيسوريان د لوهاني په نوم هم بللے شي. مروتو سره جخت په خوا کښې سهيل طرف ته ګنډه پور دولت خيل دي. د.دولت خيلو او د ګنډه پورو ملک د مروتو د ملک په نسبت زيات زرخيز دے. د ګوملې خوړ د دوئ په ملک کښې بهيدلے دے او هغوي د دې نه آبپاشي دپاره اوبهٔ اخلي. د ګنډه پور په علاقه کښې لوے لوے کلي کلاچي او ټکواړه او لوني دي. ټانک د دولت خيلو په علاقه کښې لوے کلے دے. د دولت خيلو نه قبلې ته تتوري، مياني او بيټني قبائل دي چې د دولت خيلو شاخ ګڼلے شي. کابل ته يوه لار د ټانک خوا کښې هم تللې ده. د دولت خيلو نه سهيل ته ميانخيل اباد دي. درابن د دوئ په علاقه کښې لوے مقام دے. د ميانخيلو نه سهيل ته د بابړو علاقه پرته ده. د بابړو سهيل ته ستورياني وسيږي. د بابړو لوے کلے جودا دے او د ستوريانو لوے کلے ارمک دے. د بر درانو او د دامان په قبائلو کښې دا فرق دے چې دامانيان اکثر لوے لوے ويښتهٔ ساتي ولې اوس د انګريزانو په راتلو دا فرق هم لږ شوے دے. د دامان په علاقه کښې اوس هم د سوري او د لوديانو کورونه شته. سوري هغه پښتانهٔ دي چې د دوئ مشر شهاب الدين غوري او د هغهٔ خاندان په هندوستان کښې وړومبي پښتانهٔ بادشاهان وو. مشهور شير شاه بادشاه چې همايون د بابر زوي له ئ شکست ورکړے وهٔ هم د دې خاندان نه وهٔ.

لوديانو هم په هندوستان کښې تر ډيره عمره بادشاهي کړې ده بابر مغل د دوئ وروستني بادشاه سلطان ابراهيم لودي له شکست ورکړو او د دهلي تخت ئ ترېنه واخستو.

علاوه له دې قبائلو د دامان په علاقه کښې په ژمي کښې د سليمان خيلو، خروټي او ناصر کوچي قبائل سره د خپلو ګله بيزو او اوښانو راځي.

## د کوه سليمان کوهستاني قبائل

د کوه سليمان کوهستاني قبائل دا دي : زمري، شيراني، وزير، محسود او جدران.

زمري د ستوريانو نه قبلې ته په غرونو کښې پراتهٔ دي. د زمرو قطب ته شيراني پراتهٔ دي. د شيرانو ملک د بابړو او د ميانخيلو د علاقې د پاسه دے او د شيرانو نه قطب ته وزير پراتهٔ دي. د دوئ ملک زيات تر د کوهستان په هغه سلسله کښې پروت دے چې کوم ته کوه

سلیمان وائي او ډیرو وچتو غرونو کښې واقع دے. په بعضې بعضې ځایونو کښې درې هم د دوئ په علاقه کښې شته. د کوه سلیمان نه قبلې طرف ته د ګوسے غرونه دي چې پکښې موسيٰ خیل کاکړ وسیږي او د زمرو نه قبلې ته پراته دي. صحرا نومے یو ځاے دے چې په غرونو کښې بې آب و ګیا میدان دے، په دې کښې د غرۀ بابړ وسیږي. دې علاقې نه هغه خوا ته نور غرونه دي چې د ژوب او د دوئ په منځکښې پراته دي. د موسيٰ خیل کاکړو نه هغه خوا کیپپ او هري پاک قبائل وسیږي چې د شیرانو شاخونه دي. دا قبائل د تخت سلیمان قبلې طرف ته په ویخونو کښې وسیږي. د شیرانو نه قطب ته وزیر وسیږي او قریباً یو سل میله پورې د دوئ علاقه ده. د قطب حد ئ کوه سفید سره جنګیدلے دے یوه پوله ئ جدرانو سره لګیدلې ده. د دوئ ملک هم ټول غرونه غرونه دے. مګر بعضې ځایونو کښې درې هم شته د دوئ اکثره ګزاره د ګډو بیزو په ساتنه باندې ده، اسونه هم ساتي. د دوئ ملک کښې اوسپنه هم پیدا کیږي. د جدرانو ملک د وزیرو د ملک نه قبلې ته دے. جاجیان او خروټیان هم د وزیرو نه قبلې ته پراتۀ دي. درۀ پیواړ د جاجیانو په علاقه کښې ده.

## کافرستان

د کافرو قومونه د هندوکش په غرونو کښې او د بیلوتاغ په یوه حصه کښې وسیږي. قطب په نمرخاتۀ د دوئ نه قاشقار پروت دے او قطب ته ئ بدخشان دے او قطب په قبله ئ قندوز دے. چې د بلخ په علاقه کښې دے. قبلې ته ئ اندراب او خوست دي چې هغه هم د بلخ علاقه ده. سهیل ته ئ باجوړ او لغمان دے د دوئ علاقه اکثر کوهستاني ده مګر ښې ښې زرخیزې درې هم پکښې شته. دوئ پخپله ځان له څۀ خاص نوم نۀ لري بلکې په بې شماره قبیلو کښې تقسیم دي او د هرې قبیلې جدا جدا نوم دے. پښتانۀ دوئ ته یو عام نوم د کافر استعمالوي او ملک ته ئ کافرستان وائي. دوئ په شکل او جثه کښې ډیر ښکلي خلق دے. د هرې قبیلې بیل بیل قسم ژبه ده. د لغمانیانو او د دیهګانو ژبه د دوئ ژبې سره لړه لړه مشابه ده. په دې وجه معلومیږي چې لغمانیان او دیهګان د کافرو قبائل دي چې اسلام ئ راوړے دے. د دوئ خپله دعويٰ دا ده چې مونږ د سکندر د هغې فوځ اولاد یو چې کوم هغۀ سره په هندوستان باندې د حملې کولو دپاره راغلے وۀ او بیا په واپسی کښې د هغۀ نه د فوځ څۀ حصه پاتې شوه مګر کوم خلق چې د ژبو د علم ماهران دي هغوي وائي چې د دوئ په ژبه کښې د سنسکرت ډیر الفاظ موجود دي. بعضې خلق وائي چې دا قوم وړومبے د قندهار په خوا کښې وسیدو خو مسلمانانو دوئ د هغه ځاے نه راوشړل. وائي چې د دوئ څلور قبیلې هلته اباد وے. کموز، هیلړ، سیلړ، کموځ. وړومبنو دریو قبیلو خو اسلام قبول کړو او کموج کافرستان ته راوتښتیدل. دا خلق د یو خداے قائل دي مګر ورسره به ئ د بتانو

پرستش هم کولو. دا بتان د هغه خلقو وو چې کوم د دوئ په ملک کښې لوے لوے خلق تیر شوي وو. د دوئ په عقیده کښې دا بتان به خدائے ته د دوئ سفارش کوي. په کام دیش کښې چې د کافرستان یو کلے دے خدائے ته اِمرا وائي او د سکوئي په کلي کښې ورته دګن وائي. دا خلق د شرابو څښلو شوقیان دي او ډیر زیات مهمان نواز دي. دا ملک امیر عبدالرحمٰن په خپل حکومت کښې شامل کړو او ټول خلق ئ مسلمانان کړل اوس دې علاقې ته نورستان وائي.

## بدخشان

بدخشان اګرچې ډیر وسیع ملک دے مګر په حقیقت کښې هغه یوه لویه دره ده. د بلخ د علاقې نه د بیلوت طاغ پورې تللې ده. قبلې ته د دوئ د قندوز، تالقان او د حصار ازبک وسیږي. قطب ته د پامیر کرغزي او د شمغنان، درداز او د خیها تاجک وسیږي. دا ملک هم ټول د غرونو نه ډک دے. د سیحون دریاب د بدخشان د قطب په نمرخاتۀ غرونو کښې بهیږي او د حصار ملک نه د بدخشان ملک جدا کوي. د کوچه سیند د علاقې په منځ کښې بهیږي. په دې علاقه کښې اوسپنه، مالګه او ګوګړ پیدا کیږي. پخوا به پکښې لعلونه هم پیدا کیدل. د دې ځاے وسیدونکي تاجک دي او بدخشانیانو باندې بللے شي. فیض اباد د دوئ په علاقه کښې مشهور ښار دے.

## غور

غور د هغې کوهستاني علاقې نوم دے چې کومه یو طرف ته خو د هرات او د کابل په منځکښې او بل طرف ته د قندهار او د بلخ په منځکښې پرته ده. دا علاقه د سلسله هندوکش مغربي حصې نه جوړه شوې ده. هم دغه غرونه د پښتنو اصلي وطن ګڼلے شي. هم په دې غرونو کښې دوئ د همیش دپاره خپله ازادي د مختلفو بادشاهانو او د حمله آورانو د زور زیاتي نه محفوظ ساتلې ده او د هر مشهور فاتح چې په قدیمي زمانه کښې د موجوده افغانستان په میدانونو کښې چرې د څۀ قسم حکومت قائم کړے دے نو د غور پښتنو هیچرې هم هغې حکومت ته سر تسلیم نۀ دے ټیټ کړے. اوس اوس په دې غرونو کښې هزاره او نور قبائل وسیږي.

**پښتون یا پشتون** : د لفظ پښتون یا پشتون معنيٰ ده هغه سړے چې په غرونو کښې اوسیدونکے وي. پشت وائي غرۀ یا غونډۍ ته. چونکې پښتنو هم وړومبے وړومبے په غرونو کښې استوګنه اختیار کړې ده په دې وجه هغوي ځان ته پښتانۀ یا پشتانۀ وئیل.

**تاجک** : پښتانۀ دا لفظ هغې ټولو خلقو دپاره استعمالوي چې په زمانه قدیم الایام کښې د

عربستان یا د ایران نه راغلي وو او بیا ئ په دې وطن کښې ودونه وکړل او اباد شول. د کوم سړي چې پلار عرب یا ایرانے وي او مور ئ د بل قام نه وي هغهٔ ته تاجک وائي. تاجک په هر ځائے کښې د زراعت کار کوي او په لوئے لوئے ښارونو کښې د سوداګرۍ کار کوي د منشي توب کار هم دوئ کوي.

**خراسان :** د یوې لویې علاقې او د هغې علاقې د یو خاص حصې نوم دے لکه څنګه چې انګلستان د یوې جزیرې او د هغې د یوې حصې نوم دے. د زمانهٔ قدیم په تاریخونو کښې به دا نوم د هغه ټولې علاقې دپاره استعمالیدلو. چې د هغې د نمرخاتهٔ حد دریائے سندهـ او د قبلې حد د نیرو ریګستانونه د قطب حد ئ دریائے آمو او د سهیل حد ئ بُحَیره عرب وهٔ. په نورو الفاظو کښې د ملک خراسان نمرخاتهٔ ته هندوستان، قبلې ته ایران، قطب ته ئ توران یا ترکستان(چې د ماورا النهر په نوم باندې مشهور دے) او د جیحون او سیحون سیندونو په منځکښې پروت او سهیل ته ئ سمندر وهٔ. اوس په متاخرینو مؤرخینو کښې دا نوم د دې ټولې علاقې هغې حصې ته وئیلے شي چې د دې لویې علاقې قبلې طرف ته وچته زمکه قطب په سهیل پرته ده. دې حصې ته ایراني خراسان وائي. مشهد، نیشاپور او طوس په دې علاقه کښې مشهور ښارونه دي. د دې لویې علاقې باقي حصې ته افغاني او بلوچي خراسان وئیلے شي. په حقیقت کښې بلوچ او پښتانهٔ هم د یو نسل خلق دے. د دویمې حصې علاقه د هرات نه نمرخاتهٔ ته شروع کیږي. دا علاقې تر څهٔ مودې پورې د ایران د حکومت د لاندې وے. او په دې وجه د دې د باشنده ګانو ژبه فارسي ده. افغاني خراسان د لوئے خراسان قطبي طرف ته وائي. جنوبي حد ئ د درهٔ سبّي، پشین او د شوره بک په خوا خوا کښې د سیستان ریګستانونو کښې تللے دے. د افغاني خراسان قریباً اتهٔ حصې دي. روه او کابل، زابل او سیستان، هرات او غور، بلخ او بدخشان.

د روه معنیٰ کوه ده چې غرهٔ ته وائي. د روه په علاقه کښې هغه ټوله کوهستاني علاقه شامله ده چې په قطب کښې د سوات، د بونیر، د چملې، د باجوړ او د هزارې غرونه دي او په سهیل کښې د کوه سلیمان سلسله ده. چې د هغې سر سبّي او پشین سره جنګیدلے دے. په دې کښې د خیبر ټول غرونه شامل دي. او نمرخاتهٔ ته د دریائے سندهـ عین تر غزني پورې پرته ده او قبلې ته د خواجه عمران تر غرونو پورې رسیدلې ده. هم د دې علاقې خلقو ته په هندوستان کښې روهیلي وئیلے شي. د محمود غزنوي په زمانه کښې د دې علاقې ډیر خلق په شمالي هندوستان کښې خاص طور باندې په ملک اودهـ کښې اباد شوي دي او هم په دې وجه د هغوي ملک ته روهیلکنډ وئیلے شي.

# کابل

د کابل علاقه هغې ملک ته وائي چې د کوم سهیل طرف ته د غزني او کوه سفید او قطب ته د کوه هندوکش په منځکښې پروت دے. درهٔ لوګر د دې علاقې جنوبي حصه ده او کوم ځایے چې د پغمان غرونه د غور غرونو سره جنګیدلي دي هغه د دې علاقې د قبلې حد دے. او نمرخاتهٔ ته ئ د درهٔ چترال نه عین تر کوهستان کابل پورې دا علاقه پرته ده.

د کابل نه سهیل طرف ته علاقې ته زابلستان وائي او اګرچې اوس عام طور باندې دا نوم دې علاقې ته نهٔ استعمالیږي لیکن په زړو تاریخونو کښې دا نوم هم دې علاقې ته استعمالیدلو. دا علاقه په موجوده زمانه کښې د قندهار په نوم باندې مشهوره ده. په دې علاقه کښې هغه ټول ملک شامل دے چې کوم د غزني نه قبلې ته د دریائے هلمند پورې پروت دے. د دې علاقې جنوبي حد پشین سره لګیدلے دے. او د نمرخاتهٔ حد ئ د توبه غرونه دي. قطب ته د دې علاقې د کوهستان د سلسلې کوه سیاه حد دے. د سیستان زوړ نوم سجستان وهٔ. د نیمروز په نوم باندې هم دا علاقه مشهوره ده. دا علاقه د افغانستان قبله په سهیل باندې پرته ده. په وړومبی زمانه کښې دا علاقه ډیره اباده وه ولې نادر شاه د ایران بادشاه د دې علاقې نه ډیره ابادي وویسته او دا علاقه ئ غیر اباده پریښوده. د هرات علاقه د سیستان نه قطب ته پرته ده. دا د خراسان د علاقې غزني حصه ده. د دې جنوبي حد د سبزوار ضلع ده او قطب حد ئ د ترکستان ریګستانونه دي. نمرخاتهٔ ته ئ د غور غرونه او مرغاب سیند دے.

## موجوده افغانستان

د موجوده افغانستان حدود دادي. قبلې ته ئ د ایران ملک دے قطب ته ئ د سویت روس د ترکمانستان، ازبکستان او د تاجکستان جمهوریتونه دي، نمر ختو طرف ته ئ کاشغر او د فیرنګیانو ماتحت د چترال ریاست او د پښتنو ازاد قبائل دي. او سهیل طرف ته ئ بلوچستان دے. دا ټول ملک په رقبه کښې دوه لکه اویا زره مربع میله دے. یعنې د جرمني په یو نیم او د جاپان د رقبې برابر دے. مګر چونکې اکثر ملک غرونه غرونه دے په دې وجه د میداني علاقې رقبه اووهٔ شپیتهٔ زره او پنځهٔ سوه مربع میله ده. موجوده افغانستان ټول په قطبي منطقهٔ معتدله کښې پروت دے او د قطبي عرض البلد په 30 °29او 38 °35میټر او د مشرقي طول البلد په 60 ° 50 او 74 ° 50کښې واقع دے. د دې ملک انتظامي صوبې پنځهٔ لوے او څلور وړې صوبې دا دي: لویې صوبې دا دي: کابل، قندهار، هرات، مزار شریف، قطغن او بدخشان.

وړې صوبې دا دي: سمت جنوبي، سمت مشرقي، فراه او میمنه.

**کابل :** د دې صوبې پنځهٔ ضلعې دي. کابل، سمت شمالي، غزني، ديهه زنګي، لوګر. د کابل ضلع کښې کابل، چاردهي، بګرامي، ديهه سبز، سروبي او پغمان قابل ذکر مقامات دي. په سمت شمالي کښې تګاب، ريزه کوهستان، غوربند، کوه دامان، جبل السراج، نجراب، پنج شير، سرخ و پارسا، باميان، سيغان او کهمرد قابل ذکر علاقې دي. په غزني کښې غزني، کټه واز، مقر، قره باغ، جاغوري قابل ذکر علاقې دي. په ديهزنګي کښې بيسود، ديهکنډې، يکاولنګ قابل ذکر علاقې دي. په لوګر کښې برکي راجان، کلنګار، وردګ او ميدان مقامات قابل ذکر دي.

**قندهار :** د دې صوبې خلور ضلعې دي. قندهار، ګرشک، ارزګان، قلات غلزي. په قندهار کښې قندهار، کدهني، ګرم سير، ده داؤد، غورک ډنډ، ارغستان، کشک نخود، ترين، دهلا، شوره بک قابل ذکر علاقې دي. په ګرشک کښې موسیٰ قلعه، نوزاد لويې علاقې دي. په ارزګان کښې ارزګان، ګزاب او ارجستان مشهورې علاقې دي. په قلات کښې قلات، داياؤ چوپان، هوتک، او ترنک جلدک مشهورې علاقې دي.

**هرات :** د دې صوبې درې ضلعې دي. هرات، غورات، بادغيسات. د هرات په صوبه کښې سبزوار، غوريان، کشک، قرع تپه او قلعه نو لويې علاقې دي. د غورات په ضلع کښې غور مشهور ځاے دے. د بادغيسات په ضلع کښې بالا مرغاب، تولک، ابي، چغچران او شهرک مشهورې علاقې دي.

**مزار شريف :** د دې صوبې دوه ضلعې دي، يو مزار شريف بل شبرغان. په مزار شريف کښې مزار شريف، نهر شاهي، تاشقرغان، سنګ شارک، دولت اباد، بلخ، درهٔ صوف، ايبک او کشن ديهه مشهورې علاقې دي. په شبرغان کښې شبرغان، اقچې، قرقين، سرپل لويې ځايونه دي.

**قطغن و بدخشان :** په دې صوبه کښې دوه ضلعې دي . يو خان اباد بل بدخشان. خان اباد کښې خان اباد، غوري، اندراب، تالقان، نهرين، حضرت امام، قندوز، چالو او اشکاميش مشهورې علاقې دي. په بدخشان کښې فيض اباد، رستاق، درواز، کشم، زيباک، جرم، ينګي قلعه دشت ايش و شيوه مشهورې علاقې دي.

**سمت جنوبي :** د دې صوبې صرف يوه ضلع ده ګرديز. ګرديز کښې ګرديز، خوست، ارغون، منګل، جاجي، جدران مشهورې علاقې دي.

**سمت مشرقي :** د دې صوبې دوه ضلعې دي جلال اباد او اسمار. جلال اباد کښې جلال اباد، لغمان، خوګياڼي، سرخ رود، روات، شنوار، مومند دره، او کامه مشهور ښارونه او علاقې دي. په اسمار کښې چغه سرائ، بر کنړ، خاص کنړ، کوز کنړ او درهٔ پيچ قابل ذکر کلي او علاقې دي.

فراه : د دې صوبې هم یوه ضلع ده یعني میمنه. په دې ضلع کښې میمنه، تګاب، شیرین بیرون سونه، قیصر، اندخوئ، درزاب و ګرزیوان مشهور ځایونه دي.

د افغانستان موجوده ابادي تخمیناً یو کروړ او شل لکه ده. د ځنې ځنې لویو لویو ښارونو نومونه سره د ابادۍ مونږ لاندې درج کوؤ :

| | | | |
|---|---|---|---|
| کابل : | یو لک شل زره | اقشي : | لس زره |
| چاریکار: | لس زره | بلخ : | لس زره |
| جلال اباد: | پنځلس زره | سرپل: | پنځلس زره |
| ګردیز : | لس زره | شبرغان: | لس زره |
| غزني : | پنځلس زره | تاشقرغان: | پنځویشت زره |
| خوست : | پنځلس زره | هیبک : | لس زره |
| قندهار : | یو لک | خان اباد : | دیرش زره |
| فراه : | اتهٔ زره | تالقان : | لس زره |
| ګرشک : | اتهٔ زره | رستاق : | لس زره |
| هرات : | یو لک | فیض اباد: | شل زره |
| میمنه : | دیرش زره | جرم : | اتهٔ زره |
| اندخوئ: | څلویښت زره | استالیف : | اتهٔ زره |
| مزار شریف : | اویا زره | ارګون : | لس زره |

## د پښتنو او د هغوي د ملک حالات
## د کال 1622ء نه

په کال 1622ء کښې ټوله د قندهار، کابل او غزني علاقه ماسوائ د هرات نه د مغلو په قبضه کښې وه. د شهنشاه جهانګیر د طرف نه په ټوله علاقه کښې شاه بیګ نومې وائسرائے وۀ. شاه بیګ په اصل کښې د بخارې او د نسل نه د ترکو ارغوان قبیلې نه وۀ. په ابتدا کښې دے د محمد حاکم، حاکم کابل نوکر وۀ مګر هر کله چې محمد حاکم وفات شو نو هغه د شهنشاه اکبر ملازمت اختیار کړو. هغهٔ پخپل دوران ملازمت کښې د یوسفزو او مومندو برخلاف په لشکر کشی کښې دومره نوم پیدا کړو او داسې لویه کامیابي ئ حاصله کړه چې اکبر بادشاه هغه اخر د قندهار او غزني ګورنر مقرر کړو.

په کال 1605ء کښې اکبر وفات شو مګر شاه بیګ بدستور د هغهٔ د زوي جهانګیر د طرف نه وائسرائے وۀ. په کال 1620ء کښې هغه د بیماری او د آب و هوا د ناموافق کیدو په وجه استعفيٰ ورکړه او د هغهٔ په ځاے اشرف خان د قندهار ګورنر مقرر شو. په کال

1622ء کښې شاه عباس اعظم چې د ایران بادشاه وۀ د قندهار د فتح کولو نیت وکړو او د یو لوے فوځ سره پخپله راروان شو. اشرف خان د جهانګیر نه امداد وغوښتو، خان جهان د ملتان ګورنر وۀ د هغۀ د امداد دپاره بالکل تیار وۀ ولې جهانګیر هغه د شاه عباس د مقابلې کولو نه منع کړو او ورته ئې ووئیل چې د بادشاهانو د مقابلې دپاره ما له پخپله تلل پکار دي. شاه عباس چې د دې نه خبر شو نو د دې وقفې نه ئې فائده واخسته او د قندهار محاصره ئې په دومره زور او سختئ سره شروع کړه چې څلویښت ورځې پس ئې قندهار بالکل فتح کړو. د جهانګیر په زمانه کښې مغلو بیا د قندهار د اخستلو هیڅ کوشش ونۀ کړو او تر 1637ء پورې قندهار د ایران په قبضه کښې پاتې شو.

د ایران د حکومت په زمانه کښې د قندهار په خواوشا کښې د غلجو او د ابدالیانو بې شماره طاقتور قبائل وسیدل باوجود د غیر قومونو د حکومت نه دې قبیلو سره د پښتنو د نورو قبائلو په غرونو کښې د ازادئ ژوند تول عمر تیر کړے وۀ او سوائ د سالانه خراج د ادائیګئ نه ئې خپله اندروني خودمختاري نۀ وه بائللے. د دې نه علاوه د هغوي د دماغ نه دا خبره هیچرې نۀ شوه وتلې چې مونږ په یوه زمانه کښې په هندوستان او خراسان حکومت کړے دے. د مغلو حکومت ورو ورو هغوئ د محکومیت سلوک سره اموخته کړل ولې څۀ وخت چې په هغوي باندې د مغلو افسرانو زور ظلم شروع کړو نو د مغلو په مقابله کښې به هغوي د شاه عباس غوندې انصاف پسند بادشاه په حکومت باندې خوشحاله وو او په دې وجه ئې د ایران بادشاهي په خوښئ قبوله. شاه عباس اګر چې یو ډیر عقلمند، قابل، عادل او انصاف پسند بادشاه وۀ مګر د غلجو وغیره قبائلو د ازاد منشي طبیعتونو نه ښۀ واقف نۀ وۀ. د پښتنو نورو قبیلو ایراني حکومت د مغلو په نسبت په دې وجه زیات خوښ کړے وۀ چې مونږ سره به د بادشاه او د هغۀ د ملازمانو سلوک مساویانه وي او مونږ به هغه د خپل نور رعیت سره برابر ګڼي. د مغلو سلوک هغوي سره لکه د یو محکوم په شان وۀ او لکه څنګه چې د هر حاکم قوم طریقه وي مغلو او د هغوي سردارانو به هغوي ته سپک کتل. لیکن د شاه عباس نوم او د هغۀ شهرت د هغوي په زړونو کښې دا امیدونه پیدا کړي وو چې مونږ ته به څوک سپک نۀ ګوري او د غلامئ او ذلت په نظر به راته نۀ ګوري. شاه عباس په ښۀ شان سره د هغوي د دې جذباتو نه ځان واقف کړے وۀ نتیجه دا شوه چې کوم ګورنر هغۀ په قندهار کښې مقرر کړے وۀ هغۀ د پښتنو سره بدسلوکي او سختې ناجائزې طریقې راواخستلې. څۀ موده پس د غرونو دې ازادو قبائلو ته د ایرانیانو دا طرز حکومت ناقابل برداشت ښکاره شو نو ورومبے خو ئې ګورنر ته شکایتونه وکړل چې په دې کار ونۀ شو نو یوه جرګه ئې شاه عباس له اصفهان ته ولیږله او ورته ئې ووئیل چې بهتره به دا وي چې تۀ خپل ګورنر د قندهار نه لرې کړې او په مونږ باندې هم زمونږ د قوم یو داسې سړے حاکم او مشر کړې چې د هغۀ تعلق نیغ

د شاه ایران د دربار سره وي. هغوي بادشاه ته ټولې خبرې ښې په ازادۍ وکړې او د خپلو خيالاتو نه ئې دا شان ښهٔ واقف کړو چې هغه فوراً خپله غلطي محسوسه کړه او پخپل شاهي فرمان ئې د پښتنو خپل مشران په هغوي باندې مقرر کړل.

سر جان ميلکم وائي چې شاه ایران د دې جرګې په درخواست د ابداليانو د قبيلې دوه مشران په طور د "ريش سفيد" او "کدخدا" مقرر کړل. د يو نوم سيد چې د سدوزو قبيلې نيکهٔ دے مشهور احمد شاه دراني هم د هغهٔ نمسے وهٔ او د بل نوم محمد وهٔ چې د بارکزو قبيلې نه وهٔ او د دې مشر په وجه د محمد زي قبيله اوس په دې نوم بللے شي. موجوده د افغانستان شاهي خاندان هم د دې قبيلې دے د دې مشرئ په وجه د سدوزو او بارکزو قبيلو اثر پخپل قوم زيات شو او ټولو پښتنو د هغوي مشري تسليم کړه.

ترکومه پورې چې د شاه عباس بادشاهي وه نو د هرات او د قندهار د علاقو پښتانهٔ ښهٔ په امن و امان او ارام وسيدل مگر د شاه عباس د مرګه پس د هغهٔ نمسے شاه صفوي په کال 1637ء کښې د ایران په تخت کښيناستو. دا بادشاه د طبيعت نه ظالم او سخت غير مستقل مزاج وهٔ. په دې اثنا کښې د جهانګير د مرګه پس په اتويشتم اکتوبر 1637ء کښې شاه جهان د هغهٔ زوے د دهلي په تخت باندې کښيناستو. هرکله چې د شاه صفوي د بې اعتدالو او خرابو خويونو نه خبر شو نو يو لوے فوځ ئې د قندهار مسخر کولو دپاره وليږلو. په هغه ورځو کښې علي مردان خان يو ډير قابل او دانشمند ايرانے د قندهار ګورنر وهٔ. دې د شاه عباس په وخت کښې يو ډير معتمد او بهادر جرنيل ګڼلے شو او په ډيرو معرکو کښې هغهٔ ځان د بادشاه د اعتبار قابل ثابت کړے وهٔ. مگر چونکې هغه ډير دولتمند وهٔ په دې وجه شاه صفوي دا غوښتل چې هغهٔ نه ټول دولت په څهٔ چل واخلي نو ډير اميران چې په رتبه کښې د علي مردان په شان وو دې حريص او ظالم بادشاه د خپل مال او دولت نه محروم کړي وو. هغوي به ئې دربار ته په څهٔ بهانه راوغوښتل او په پټه به ئې بې ګناه قتل کړل. آخر د علي مردان وار راغلو حکم ئې ورپسې واستولو چې دارالحکومت ته راشه هغه پوهه شو او په ځاے د دې چې د بادشاه دربار ته لاړ شي هغهٔ په پټه شاه جهان سره خط و کتابت شروع کړو او بالاخر ئې قندهار د هندوستان شهنشاه ته وسپارلو. او پخپله دهلي ته روان شو. شاه جهان د هغهٔ ډير عزت او مدار وکړو او سمدستي ئې هغه د يو لوے فوځ سره چې هغهٔ د بدخشان او د بلخ د مسخر کولو دپاره تيار کړے وهٔ جرنيل مقرر کړو. هرات بدستور د ایران سره پاتې شو.

په کال 1641ء کښې شاه صفوي مړ شو او د هغهٔ زوے شاه عباس ثاني تخت نشين شو. د تخت نشينۍ په وخت د هغهٔ عمر لس کاله وهٔ د هغهٔ ورومبے خواهش دا وهٔ چې قندهار مې فتح کړې. د قندهار پښتانهٔ د مغلو د حکومت نه تنګ وو چنانچه غلجو هم د ایران دارالحکومت ته په قندهار باندې د چپاؤ کولو دپاره دعوت ورکړو. آخر شاه عباس ثاني د

حملې کولو دپاره قصد وکړو. د هر قسم فوځي تياري ئ په ډيره پټه او لويه پيمانه باندې وکړه بيشانه ډيرې روپۍ د فوځ په سازوسامان او د محاصرې کولو وسلې باندې خرڅ کړې او په دي خيال چې د هندوستان نه امدادي فوځ په هيڅ شان باندې قندهار ته راونۀ رسي. د حملې تاريخ ئ تر هغې پورې ملتوي کړو چې تر کومې پورې د قندهار د لارې په درو کښې واؤرې پريوتې.

په کال 1647ء د دسمبر په مياشت کښې شاه عباس ثاني قندهار ته راورسيدو او د ښار محاصره ئ وکړه. اورنګزيب د شاه جهان زوے په دې ورځو کښې په لاهور کښې وۀ د پلار په حکم باندې فوراً د قندهار امداد ته سره د يولوے فوځ روان شو ليکن درې ټولې د واؤرو نه ډکې وے. په دې غرونو باندې د فوځ او د باربرداری د ځناورو اوړيدل څۀ اسان کار نۀ وۀ ليکن چونکې اورنګزيب يو نهايت چاق او بهادر جرنيل وۀ د يخنی او د واؤرو ټول تکليفونه په ځان او په فوځ باندې تير کړل درې ئ ټولې عبور کړې ولې د دې تکليفونو او سخت محنت په وجه د هغۀ فوځ څۀ غير منظم پاتې شو. اورنګزيب په غرونو او په درو باندې خو وررواوړيدو ولې څۀ وخت چې د قندهار د علاقې په حد کښې داخل شو نو ورته معلومه شوه چې د قندهار ښار ايرانيانو فتح کړے دے چونکې د هغۀ فوځ د غرونو د تکليفونو اومشقتونو په وجه ډير کمزورے او لږ شوے وۀ په دې وجه ئ په قندهار حمله ونۀ کړه. او واپس کابل ته د ژمي تيرولو دپاره لاړو. مخکښې کال اورنګزيب د يو جرار فوځ د قندهار د اخستلو په نيت باندې د کابل نه روان شو او د ښار محاصره ئ وکړه. شاه عباس ثاني يو معمولي فوځ په قندهار کښې د حفاظت دپاره پريښے وۀ او پخپله واپس خپل ملک ته تلے وۀ ليکن څۀ وخت چې ورته معلومه شوه چې اورنګزيب د قندهار محاصره وکړه نو يو ښۀ منظم فوځ ئ د امداد دپاره راوليږلو اورنګزيب د خپل فوځ يوه حصه د دې فوځ په مقابله کښې ورروليږله او دا فوځ قندهار ته د رارسيدو نه منع کړو. چونکې د علاقې خلق د مغلو په حکومت باندې خوشحاله نۀ وو د دې دپاره د ايرانيانو فوځ د دې خلقو په امداد سره د اورنګزيب د رسد رسانی لارې بند کړلې او چارچاپيره ملک ئ ورته غير اباد کړو. اورنګزيب په دې وجه ډير سخت تنګ شو او چونکې د قندهار نه لرې هغه د ايران په فوځ باندې حمله نۀ شوه کولے د دې دپاره مجبور شو او د دسمبر په مياشت کښې ئ د قندهار محاصره وچته کړه.

درې کاله پس اورنګزيب بيا وروستي ځل نه هم زياتي فوځ سره د قندهار مسخر کولو په نيت راروان شو. د قندهار محاصره ئ وکړه مګر ناکام شو. شاه جهان د دې نه پس اورنګزيب دکن ته واستولو. داراشکوه د شاه جهان بل زوي پخپل درخواست باندې دويم ځل د قندهار اخستو دپاره خپل پلار راوليږلو. دارا شکوه يو لوے جرنيل او قابل کماندر وۀ

کوم فوځ چې هغهٔ خان سره روان کړے وهٔ هغه د اورنګزیب د دوارو فوځونو نه زیات وهٔ او سازوسامان باندې هم پوره وهٔ. د هغهٔ په فوځ کښې د هغهٔ سره دوه یورپین افسران هم وو اګرچې دارا شکوه د قندهار په حمله کښې د بهادرۍ، مردانګۍ، شجاعت او دلیرۍ عدیم النظیر نمونه پیش کړله لیکن آخر د هغهٔ فوځ ناکام شو. او ایرانیانو د پښتنو په امداد د مغلو د فوځ په ډیره سختۍ سره مقابله وکړه. په دې جنګونو کښې غلجیانو او ابدالیانو د ایرانیانو په هر شان سره امداد وکړو او آخر د مغلو فوځ د قندهار د فتح کولو نه دا شان مایوسه شو. چې دارا شکوه کابل ته سره د خپله لښکره کوچ وکړو او د قندهار د تسخیر اراده ئې د همیش دپاره پریښوده. شاه عباس ثاني د هغې جذباتو په عوض کښې چې غلجو او ابدالیانو قبیلو هغهٔ سره د مغلو برخلاف ظاهر کړي وو ډیر نقد انعامات ورکړل اود سالانه خراج رقم ئې هم ورته ډیر کم کړو. چونکې د ایران ګورنر په قندهار کښې برائے نام وسیدلو او د قبائلو په اندروني خودمختارۍ کښې هغهٔ د هیڅ قسمه دخل نهٔ کولو او عام طور باندې د بادشاه سلوک هم هغوي سره د برابرۍ وهٔ په دې وجه د شاه عباس ثاني په ټول عهد حکومت کښې قندهار او د هغې چارچاپیره علاقو ډیر په امن و امان سره خپل ژوند تیر کړو.

په کال 1666ء کښې د شاه عباس ثاني انتقال وشو. شاه سلیمان د هغهٔ په ځاے تخت نشین شو اګرچې دا بادشاه په طبیعت کمزورے، عیش پسند او غیر مستقل مزاج وهٔ ولې پښتنو سره د هغهٔ تعلقات هم د شاه عباس ثاني او د شاه عباس اعظم په شان وو. د هغهٔ سلوک هغوي سره ډیر ښهٔ وهٔ او هیچرې هم هغوي ته ئې د مغلو په شان د غلامۍ په نظر نهٔ وو کتلي. په دې وجه عین تر 1694ء پورې د قندهار علاقه بالکل خاموشه او پرامن پاتې شوه. په کال 1694ء کښې شاه سلیمان وفات شو او د هغهٔ زوے سلطان حسین د هغهٔ په ځاے د ایران بادشاه شو. دا بادشاه ډیر سخت متعصب، وهمي او ارام پسند وهٔ. د رعایا د خوشحالۍ هیڅ فکر هغهٔ سره چرې نهٔ وهٔ، پخپلو ټولو ملکي معاملاتو کښې هغهٔ بې علمه ملایانو او د خواجه سراګانو په لاس کښې وهٔ. د بعضې ناعاقبت اندیش حاکم قومونو دا لار وي چې هر کله هغوي یو بل قوم چې په تهذیب او طرز معاشرت کښې د هغوي په شان وي فتح کړي نو وړومبے خو د هغوي د زړونو مسخر کولو دپاره او د هغوي د محبت او د همدردۍ حاصلولو دپاره هغوي سره ډیر ښهٔ او د برابرۍ سلوک کوي. هروخت هغوي ته دا نهٔ محسوس کوي چې تاسو د بل قوم محکوم یئ مګر هر کله چې په هغوي باندې د حکومت څهٔ موده تیره شي او دوئ پوه شي چې زمونږ د حکومت بنیادونه ولګیدل او مونږ خپلې پنجې د مفتوحه ملک په ګوټ ګوټ کښې ښخې کړې ځاے په ځاے قلعه ګانې او نور د حفاظت اسباب تیار کړي نو د هغوي د سلوک او د حکومت طرز بالکل بدل شي. ګړۍ په ګړۍ بیا هغوي مفتوحه قومونو ته دا ښودل غواړي چې تاسو محکوم یئ او مونږ حاکمان یو. مونږه بادشاه یو او تاسو زمونږ

غلامان يئ. هغوي په ديرينه حقونو کښې هره ورځ يو نوے مداخلت راواخلي او يو بې جا قيد ولګوي. ورو ورو پـه هغوي باندې ماليې زياتې کړي او بالاخر د هغوي په ازادۍ او اندروني خودمختارۍ کښې دست اندازي شروع کړي.

چونکې د شاه عباس اعظم د زمانې نه ايرانيانو په پښتنو باندې کم و زيات قريباً دوه اويا کاله حکومت کړے وۀ د دې دپاره هغه د عزت او برابرۍ سلوک چې کوم شاه عباس اعظم او د هغۀ نه پس شاه عباس ثاني او شاه سليمان هغوي سره کړے وۀ سلطان حسين د هغې برخلاف پښتنو سره سختي شروع کړه او ايرانيانو پښتنو ته لکه د مغلو په شان سپک کتل شروع کړل. چونکې ايرانيان د مغلو د حملو نه هم بې غمه شوي وو او دا خيال ئ کولو چې مونږ پښتانۀ د تورې په زور باندې زير کړي دي. د هغوي نخوت او متکبرانه سلوک د پښتنو مشرانو سره ورځ په ورځ زياتيدو. د يو ناقابل بادشاه وزراء، امراء او ګورنران هيچرې هم په خپلو اختياراتو او دبدبۀ حکومت کښې کمے نۀ غواړي بلکې بسا اوقات د ذاتي رسوخ او ذاتي وجاهت زياتولو دپاره د سلطنت د اصلي مفادو نه برخلاف محکوم قومونو سره ناجائزه سختي او ناقابل برداشت سلوک راواخلي. هم دغه حال د شاه حسين د افسرانو وۀ چې کوم د قندهار د علاقې د انتظام دپاره مقرر شوي وو. دې افسرانو وقتاً فوقتاً شاه حسين ته د پښتنو په سر چغلۍ خوړلې چې دا قومونه ډير زيات خودمختار شول د حکومت د خلقو په دې خلقو کښې هيڅ رعب داب نشته، ماليې په ډير تکليف سره وصوليږي او په ملک کښې د هغوي د سرکشۍ او سرتيزۍ په وجه باندې ورځ په ورځ بدامني او بدنظمي خوريږي. په حقيقت کښې د دې افسرانو د پښتنو هغه ازادي او اندروني خودمختاري چې کومه هغوي ته دشاه عباس اعظم د وخت نه حاصله وه نۀ وه خوښه اودا ئ غوښتل چې د شاهي افسرانو رعب داب او ذاتي عزت او دبدبه دې د پښتنو په غيرتمند قوم باندې هم دومره زياته وي چې څنګه د يو حاکم قوم په يو مفتوح قوم باندې عام طور باندې وي. چونکې شاه حسين يو ناقابل بادشاه وۀ او مکمل طور باندې د خپلو وزراؤ او امراؤ په لاس کښې وۀ. هغۀ د قندهار ايراني افسرانو ته د حکومت د نظم و نسق برقرار ساتلو دپاره پرانستې واکې ورکړې. نتيجه دا شوه چې د حکومت افسرانو په پښتنو باندې سختي راواخستله. غلجي او ابداليان لا په دې پوهه نۀ وو چې د محکوميت قدرتي او لازمي نتيجه بالاخر ذلت او خواري ده. هغوي يو وفد د شاه حسين دربار ته د خپلو مشرانو ورولېږلو او خپل شکايات ئ په ډير ادب او ښې طريقې سره هغۀ ته پيش کړل. په کومه بې باکۍ چې پښتنو خپل معروضات بادشاه او د هغۀ امراؤ ته پيش کړل په ځاے د دې چې د هغې نه هغۀ د هغوي د جذباتو او خيالاتو ژوروالے معلوم کړے وے او د هغې تدارک او د هغې دپاره ئ څۀ علاج راوښکلے وے هغۀ د هغوي په شکايتونو او معروضاتو باندې برافروخته شو لکه څنګه چې د يو سست، لا پروا او متکبر حاکم قاعده

وي. هغهٔ د دې معروضاتو متعلق هم د هغې مقامي افسرانو نه رائ واخسته چې د چا برخلاف شکايتونه شوي وو. هغوي ذا مشوره ورکړه چې بغير د ډنډې د زور نه دا خلق نهٔ سميږي. او کهٔ چرې ورومبے څهٔ لږه د مروجه قانون مطابق سختي شوې ده نو اوس پکار دي چې سختي او بدسلوکي زياته شي او د دوئ تحريک په ابتداء کښې تباه کړې شي. هغوي په خپلو رپورټونو کښې شاه حسين د پښتنو د سرکشي او د هغوي د تندخويۍ نه دومره ويرولو چې هغه بالکل پريشانه شو او د ويرې نه ئ داسې کار وکړو چې د هغې نتيجه د ايران د سلطنت تباهي او بربادي وه. شاه حسين د خپلو افسرانو په رائ باندي عمل وکړو او د پښتنو د ازدو قبائلو د سرکوبۍ دپاره ئ د ايران په فوځ کښې چې کوم د قابل نه قابل سړے په دې وخت کښې موجود وهٔ سره د يو جرار فوځ او د مکمل اختياراتو په حيثيت د قندهار د گورنر راواستولو. د دې سړي نوم گورجين خان وهٔ دي په اصل کښې د جارجيانو د علاقې يو عيسائي وهٔ، جارجيان د ايران يوه صوبه ده. ليکن دې سړي د خپلې صوبې د خودمختارۍ حاصلولو دپاره د ايران د بادشاه نه بغاوت وکړو. کوم جنگ چې د ايراني فوځ او د دې صوبې د خلقو په منځکښې وشو اگرچې په هغې کښې گورجين خان په ډيرې بهادرۍ سره جنگ وکړو مگر اخر ئ شکست وخوړو او په معرکهٔ جنگ کښې قيد شو. د باغي سزا په سلطنت کښې ټول عمر قتل وي ليکن دې سړي په دې باندې ځان د ايران د قانون نه خلاص کړو چې زهٔ مسلمانيږم او د بادشاه په فوځ کښې نوکري اختياروم. چونکې بادشاه پخپله د هغهٔ د فوځي قابليت او د تنظيم د قوت قائل وهٔ په دې وجه ئ هغهٔ له د يو لوے فوځ د جرنيلۍ عهده ورکړه. او د قتل نه ئ معاف کړو. په حيثيت د يو فوځي افسر دې سړي خپل ځان په دوؤ صفتونو باندې ممتاز کړے وهٔ. يو فوځي قابليت او دويم سختي. په دې وجه د شاه او د هغهٔ د امراء او وزراء رائ هم دا شوه چې د پښتنو غوندې زيگ قوم د زير کولو دپاره دا سړے مناسب دے. گورجين خان چې څهٔ وخت مسلمان شو نو ځان له ئ شاه نواز خان نوم کښيښودو او د قندهار په طرف روان شو. گورجين خان په کال 1702ء کښې قندهار ته راورسيدو او راتلو سره ئ د پښتنو سره دا قسم سختي شروع کړه چې په گزشته سلو کالو کښې نهٔ هغوي د مغلو د لاسه ليدلې وه او نهٔ د ايرانيانو دلاسه. گورجين خان په ډيره بې رحمۍ او ظلم زياتي سره د پښتنو په ځان، مال او عزت باندې حملې شروع کړې. د هغهٔ د فوځ دلاسه نهٔ سپين ږيرے خلاص وهٔ نهٔ ځوان نهٔ ښځه نهٔ سړے نهٔ ماشوم او نهٔ بالغ.

غرض دا چې هر طرف ته د دې ظالم او سفاک گورنر فوځونه په ملک کښې خوارهٔ شول. د خلقو مالونه ئ تالا کړل، کورونه ئ ورله وسيزل، غلې ئ ترې واخستې، بچي ئ ورله قتل کړل، ښځې ئ ورله بې عزته او بې پردي کړې، فصلونه ئ ورله تباه کړل، ثابت ثابت کلي ئ والوځول او د عامو پښتنو په زړونو کښې ئ د هيبت او خوف طاري کولو

کوشش وکړو. اگرچې پښتنو د ایرانیانو نه هیڅ قسمه بغاوت نهٔ وهٔ کړے هغوي سره صرف د خپلې ازادۍ د محفوظ ساتلو شوق وهٔ او هم د هغې برقرار ساتلو دپاره ئ د ایران د بادشاه په خدمت کښې درخواستونه او جرگې استولې وے. مگر دې خونخوار او بې رحمه فوځي هغوي سره د باغیانو خلقو نه هم زیاتي سخت سلوک وکړو. ټول خلق ئ بي کوره کړل، ځو ځو ځایونو کښې ئ قتل عام وکړو او بیشماره خلق چې په هغې کښې زاړهٔ او مشران، ځوانان او هلکان، د ښو ښو کورونو جینکۍ په طور د غلامانو او وینځو د خپل فوځ افسرانو له ورکړل. په بیله بیله علاقه کښې ئ د خپل فوځ دستې واستولې. هغوي په زور د خلقو نه د هر قسم خدمات اخستل د هغوي څاروي به ئ د خوراک دپاره حلالول، خپل خوراک به ئ د هغوي نه په ظلم او په زیاتي اخستلو. خلاصه دا چې یو داسې سور اور ئ په لړه موده کښې په پښتنو راکوز کړو چې په ټول وطن ئ قیامت راوستو. د پښتنو دا هرگز امید نهٔ وهٔ چې مونږ سره به دا سلوک کیږي. هغوي خو بادشاه له په فریاد تللي وو، درخواستونه ئ ورکړي وو جرگې ئ وراستولې وے. بادشاه هغه هر څهٔ نامنظور کړي وو. په دې وجه هغوي خفه وو، په قبائلو کښې بې چیني هم وه ولې هغوي بغاوت بالکل نهٔ وهٔ کړے، د ایران یو افسر هم نهٔ وهٔ قتل شوے نهٔ د سالانه خراج په ادائیگۍ کښې ډیل شوے وهٔ. د هغوي خو صرف دا منشا وه چې مونږ خو هم ستاسو په شان ازاد خلق یو پکار دي چې د حکومت افسران دې مونږ سره د مساوات او د برابرۍ سلوک کوي. د هغوي دا خیال وهٔ چې د ایران حکومت مونږ په خپله رضا منلے دے کهٔ چرې مونږ هغوي سره امداد نهٔ وے کړے نو دا وخت به دا ملک د مغلو په لاس کښې وهٔ. حقیقت دا وهٔ چې د غلجو او ابدالیانو قبائل د دوؤ لویو سلطنتونو په منځکښې پراتهٔ وو یو طرف ته ترې مغل وو او بل طرف ته ترې ایرانیان وو او د دواړو دا کوشش وهٔ چې قندهار زمونږ په قبضه کښې وي. هغوي په دې دواړو کښې د یو هم مقابله نهٔ شوه کولے ځکه چې د ډیرې مودې نه هغوي د خپلې بدنظمۍ او د خپلو بې اتفاقو په وجه کمزوري شوي وو. ولې چونکې د مغلو سلوک هغوي سره خراب شو نو هغوي پخپله د ایرانیانو ملگري شول او مغل ئ د ملکه وویستل. هم دا وجه وه چې هغوي ځان د ایران مفتوحه قبائل نهٔ گڼل. او نهٔ ایران هغوي سره د مفتوحه قوم په شان سلوک کړے وهٔ. هر کله چې هغوي سره د حکومت افسرانو سختي راواخسته نو هغوي ظلم او زیاتي ته د سر ټیټولو نه انکار وکړو. ولې گورجین خان د هغوي د زړهٔ او دماغ نه د ازادۍ او د مساوات دا خیالات ویستل غوښتل. د هغهٔ مقصد دا وهٔ چې پښتانهٔ دې ځان د ایران د حکومت غلامان او مریي وگڼي نه چې رعیت. سره د دومره زور او زیاتي د پښتنو دا خیال وهٔ چې بادشاه پخپله د دې دومره ناجائزه سختو نه خبر نهٔ دے. یو ځل د شاه عباس اعظم په زمانه کښې هم هغوي ته د ایران د افسرانو نه د شکایت موقع پیښه شوې وه او هر کله چې هغوي شاه مذکور ته د هغوي برخلاف یوه جرگه واستوله

نو هغهٔ د هغوي ټول معروضات منلي وو. پس هغوي فیصله وکړه چې د مشرانو یوه جرګه دې د ټول قوم د طرف نه یو درخواست د شاه حسین په خدمت کښې بیا پیش کړي چې د هغې په ذریعه هغه د موجوده طرز حکومت د حال نه پوره خبر شي او ورته عرض وکړې شي چې د استبداد او د جور دا دوران چې ګورجین خان دا وخت د قندهار په ملک باندې جاري کړے دے هغه ختمیدل پکار دي. چنانچه په کال 1706ء کښې یوه لویه جرګه د یو درخواست سره اصفهان ته د بادشاه دربار کښې د پیش کیدو دپاره لاړه. د شاه حسین او شاه عباس اعظم په عادتونو او خویونو کښې د زمکې اسمان فرق وهٔ. شاه حسین اول اول خو د هغوي د سپکاوي دپاره هغوي سره په ملاقات کښې ټال مټول وکړو او بیا څهٔ وخت چې ئې ورسره ملاقات وکړو نو داسې سپور او سپک جوابونه ئې ورکړل چې کهٔ د پښتنو نه سیوا بل قوم وے نو سمدستي خپل ملک ته واپس کیدو سره به ئې د بغاوت جنډه وچته کړې وے. دې کښې هیڅ شک نشته چې د تکبر د زور او د ظلم جرائیم د ګلابو په اوبو نهٔ مري، د هغې دپاره د زهرو چړکاؤ پکار دے. د غلجو او د ابدالیانو سترګې اوس د محکومیت او د غلامۍ حالت ته ښې پرانستې شوې. هغوي د ګورجین خان او د هغهٔ د فوځ په موجودګۍ کښې علانیه بغاوت کول خلاف عقل وګڼل. د ګورجین خان سختۍ پښتانهٔ خو د هغه وخت دپاره چپ کړل مګر د هغوي په زړونو کښې هغهٔ د ایرانیانو برخلاف دا قسم نفرت پیدا کړو چې د هغې میوه شاه حسین او د هغهٔ ایراني رعایا ډیره په لړه موده کښې هم د غلجو او ابدالیانو د لاسه وڅکله.

پښتنو په خلهٔ خو څهٔ ونهٔ وئیل ولې په زړهٔ کښې ئې مصمم اراده وکړه چې په هر شان چې وي ځان د محکومیت نه خلاصول پکار دي. دا وخت ګورجین خان سره دیرش زره په وسله پُر فوځ د قندهار په علاقه کښې موجود وهٔ. د غلجو او ابدالیانو کشرانو خو په علانیه د مقابلې قصد کړے وهٔ ولې د هغوي مشران ډیر عقلمند او هښیار وو. هغوي ورته د صبر او استقلال نصیحت وکړو. او په مناسب وخت او موقع باندې د یو فیصله کن عمل وعده ئې ورسره وکړه.

په دې زمانه کښې د غلجو د قبیلې مشر میرویس وهٔ دا سړے د ګورجین خان نه وړومبے د قندهار "کلانتار "یعنې افسر اعلیٰ وهٔ او علاوه د خانداني عزت نه ئې د حکومت د طرف نه ډیر وسیع اختیارات لرل په دې وجه پخپله ټوله قبیله کښې د هغهٔ رسوخ بیشانه ډیر وو چونکې نهایت زیرک، تجربه کار، بهادر قوم پرست وهٔ او د دې زمانې د سردو ګرمو نه واقف وهٔ د دې دپاره هغهٔ به همیش خپلې قبیلې ته نهایت دانشمندانه مشوره ورکوله او کشران او ځوانان به ئې د دې قسم کارونو نه منع کول. چې ګورجین خان ته د نور زیاتې مظالمو کولو موقع په لاس ورکړي. د ګورجین برخلاف چې کومې جرګې شاه حسین ته د

قوم د طرف نه درخواست پیش کړے وۀ په هغې کښې میرویس لویه حصه اخستې وه په درخواست باندې هم د هغۀ دستخط موجود وۀ. او چونکې پخپل قوم کښې بیشانه ډیر هردلعزیز وۀ په دې وجه د هغۀ اثر او اهمیت د قوم په ټولو معاملو او جرګو کښې ډیر زیات وۀ د خپلې مهمان نوازۍ، سخاوت، فصاحت او د نرمې ژبې په وجه د قوم ټول مشران هم هغۀ ته ناست وو او چونکې د ملک په معاملاتو کښې ډیر زیات دوراندیش او سیاستدان وۀ داسې یوه معامله به نۀ وه چې د هغۀ رائ به پکښې فیصله کن نۀ وه.

خلاصه دا چې د پښتنو په موجوده مصبتونو کښې صرف میرویس یو داسې سړے وۀ چې د ټول قام مسلم مشر او رهبر وۀ. هر کله چې د ګورجین خان برخلاف د پښتنو جرګه د شاه حسین د دربار نه ناکامه راغله نو هغۀ خپل قوم ته مشوره ورکړه چې ایران سره په صلح او په امن وسیدل پکار دي. د ګورجین خان دا قسم سړے د دشمن په قام کښې قدرتي طور باندې ناخوښ وۀ د هغۀ دا خیال وۀ چې د غلجو او ابدالیانو د قتل عام په لاره کښې صرف هم دا سړے حائل دے. د هغۀ دا منشا وه چې پښتانۀ ښکاره بغاوت وکړي او زۀ ئ د تورې په زور باندې زیر و زبر کړم. ولې میرویس خپل قام دې ته نۀ پرېښودو او په دې وجه د ګورجین خان د زړۀ تمنا پوره کیدے نۀ شوه اخر ګورجین خان د میر ویس د رزو افزون اثر له تنګ شو او میرویس ئ سره د نورو یو څو مشرانو او سپین ږیرو د حکومت برخلاف د سازش او بغاوت کولو په الزام کښې ګرفتار کړل. او اصفهان ته ئ د بادشاه دربار ته په طور د قیدیانو ولیږل هر کله چې ګورجین خان ځان د میر ویس او د قام د نورو مشرانو نه خلاص کړو نو خپل ځان ئ محفوظ وګڼلو او د فوځ یوه لویه حصه ئ څۀ موده پس ایران ته واپس ورولیږله.

میرویس اصفهان ته وررسیدو په دربار کښې حاضر شو بادشاه او د هغۀ وزراؤ او امراؤ سره ئ خبرې وکړې د ډیرې لږې مودې د قیام نه پس ورته معلومه شوه چې شاه حسین یو کمزورے او ښځه رنګ بادشاه دے چې بالکل د خپلو امیرانو او افسرانو په لاس کښې دے امیران ئ بددیانته، رشوت خوارۀ او تن اسانه دي، ملیان ئ جاهل، بې علمه او متعصب دي د هغۀ دا یقین راغے چې په دې ټولو اراکین سلطنت کښې یو سړے هم داسې نشته چې هغه د هغۀ د ژبې د اثر د هغۀ د سخاوت دلاسه او د هغۀ د سیاستدانۍ د پنجې نه خلاصیدے شي. هغۀ فوراً د خپلو قابلیتونو نه کار اخستل شروع کړل او په لږه موده کښې ئ د خپلې مهمان نوازۍ،د سخاوت ، د خوش اخلاقۍ او فصاحت په ذریعه د دربار امیران خپل طرفدار کړل بیا ئ بادشاه سره د یواځې ملاقات درخواست وکړو او په یو ډیر مؤثر تقریر کښې ئ هغۀ ته خپل ځان بیګناه ثابت کړو. د ګورجین خان اصلي مدعا د میرویس اصفهان ته لیږلو کښې دا وه چې هغه دې نظربند او قید کړے شي هغۀ له دې قسماقسم تکلیفونه ورکړے شي او کۀ چرې ضروري وي نو قتل دې کړے شي. د هغۀ دا خیال وه چې پښتانۀ په خوشحالۍ

بانـدې د ایران غلامۍ قبلولو ته تیار دي. خو میرویس او یو شو نور مشران ئې پوهه کوي او د ایران برخلاف د پښتنو زړونو کښې نفرت پیدا کوي مګر هر کله چې میرویس د شاه ایران دربار ته ورورسیدو نو نتیجه د ګورجین خان د اصلي مدعا نه بالکل خلاف وشوه. هغهٔ د خپل قابلیت او دانشمندۍ په ذریعه دومره لوے رسوخ ځان له د بادشاه په دربار کښې پیدا کړو چې په ځاے د یو شاهي قیدي هغه یو شاهي درباري شو.

هر کله چې میرویس د دربار ټول امیران، وزیران او بادشاه پخپله خپل طرفداران کړل او دا ئې معلومه کړه چې په اراکین سلطنت کښې د حکومت د استحکام دپاره چې د کومو صفتونو او شرطونو ضرورت دے هغه یو هم په دوئ کښې نشته بلکې ټول سلطنت په زور رعب داب باندې چلیږي او هر کله چې هغهٔ ته دا معلومه شوه چې د حکومت په دې ټولو صفتونو کښې پښتون قوم د برسر حکومت ایرانیانو نه زیاتي ممتاز دے نو په دې نتیجه ورسیدو چې ایران او د هغهٔ بادشاه د دې مستحق نهٔ دي چې پښتنو باندې دې حکومت وکړي. هغهٔ ته دا معلومه وه چې پښتانهٔ چې په کوم مرض باندې ناجوړه دي هغه بې اتفاقي او یو بل سره دشمني ده کهٔ چرې دوي د دې مرض نه خلاص شول نو ازادي حاصلول د داسې ظالم حکومت نه هیڅ مشکل کار نهٔ دے. تر هر څومره مودې پورې چې په ایراني دربار کښې وهٔ شپه او ورځ هغه په دې خیال کښې لګیا شو چې خپل قوم او وطن به زهٔ د غیر قوم د حکومت نه څنګه خلاصوم. هغه په دې نتیجه ورسیدو چې کهٔ د حاکم قوم هرڅومره ډیر خدمت او تابعداري وکړې شي کهٔ هرڅومره د هغوي اطاعت او فرمانبرداري وکړې شي مګر دا نامـمکنه ده چې هغوي دې محکوم قوم سره د عزت او برابرۍ سلوک وکړي. پس د دې نه د هغهٔ د زندګۍ صرف یو مقصد وهٔ او هغه دا وهٔ چې خپل قوم به څهٔ رنګ په یو نظام عمل باندې متفق کړم. او د غلامۍ او محکومیت تور داغ به د خپل قام د لمن نه څنګه ووینځم. دې بهادر او مستقل مزاج غلجي پخپل زړهٔ کښې عهد وکړو چې ترڅو پورې زما په تن کښې روح دے یو منټ او یوه ګړۍ او یو ساعت به د دې کار په تکمیل کښې غفلت ونهٔ کړم. ولې میرویس علاوه د قوم پرستۍ د بهادرۍ نه د ډیرې لویې حوصلې خاوند هم وهٔ. هغهٔ د خپل مقصد په بام باندې پانړکۍ په پانړکۍ ختل شروع کړل. د خپل تکمیل مقصد دپاره ئې لوے لوے تجویزونه په زړهٔ کښې جوړ کړل په مستقل مزاجۍ کښې دا انسان د اوسپنې په شان وهٔ ولې ژبه ئې د شکرو په شان خوږه او پسته وه د هغهٔ مدعا د هغهٔ نه د یوې لحظې دپاره هم پټه نه وه ولې د هغهٔ د زړهٔ په حال باندې بغیر د هغهٔ او د هغهٔ د جانثارو ملګرو نه بل هیڅوک خبر نهٔ وو. هغهٔ خپل مال او دولت لکه د کونجکو پشان وویشلو او لکه د لیونو په شان هروخت په دې سودا کښې ګرځیدلو چې وطن به څنګه ازادوم اوس د هغهٔ دشمني یواځې ګورجین خان سره نهٔ وه. د ګورجین خان ظلم، سختي او تعدي خو هغهٔ اوس د خداے یو نعمت ګڼلو. د هغهٔ

مطلب اوس د ګورجین خان بدلولو کښې نهٔ وهٔ بلکې د هغهٔ مدعا د ټول نظام بدلول وهٔ چې بیا د ملک د ښهٔ او بد اختیار د خپل قام په لاس کښې وي. او د درخواستونو او جرګو استولو ضرورت پاتې نهٔ شي هغهٔ ته اوس دا یوه ډیره عجیبه خبره ښکاریده چې د شاه حسین غوندې عیاش زاني بادشاه دې د خپلو رشوت خورو ظالمانو او بیوقوفو امیرانو په ذریعه د پښتنو پشان بهادر نیک چلن او مهمان نواز قوم باندې حکومت کوي.

د میرویس غوندې معامله شناس او د زمانې نه واقف سړي دپاره د شاه حسین په دربار کښې کامیابي حاصلول ډیر اسان وو. هغهٔ خپل کار په ډیر احتیاط او فکر سره شروع کړو. د شاه حسین غوندې کمزوري او بزدل سړي په زړهٔ کښې د ګورجین خان غوندې د زبردست او کل اختیاره افسر متعلق شکوک پیدا کول د میرویس غوندې دانشمند او فصیح سړي دپاره څهٔ مشکل نهٔ وو. د تن اسانه امیرانو او د دربار د عیش پسنده افسرانو تائید او امداد حاصلول د میرویس غوندې مهمان نواز او سخي سړي دپاره هیڅ ګران نهٔ وو. په مناسبو موقعو باندې د بادشاه په غوږونو کښې د ګورجین خان د وسیع اختیاراتو د هغهٔ د بیحده زور د هغهٔ د فوځي شان و شوکت د امیرانه جاه و حشم متعلق خبرې وروروسولې او د بادشاه په زړهٔ کښې ئې دا خیال پیدا کړو چې ګورجین خان د قندهار په علاقه کښې د شهنشاه ایران نه ځان په هیڅ وجه کم نهٔ ګڼي هغهٔ ښکاره د ګورجین خان بد هیچرې په غوټ پریکړي الفاظو کښې بادشاه ته نهٔ وئیل بلکې د هغهٔ د زور او طاقت به ئې تعریف کولو. لیکن کله کله به ئې د بادشاه او د هغهٔ د امیرانو په وړاندې دا ویره ښکاره کړه چې کوم سړے چې لږه موده شوې ده د بادشاه برخلاف باغي شوے وهٔ هغهٔ له دومره لویې واکې او لوے اختیارات ورکول د خطرې نه خالي نهٔ دي. هغهٔ به کله کله په دې هم ډیر لوے تعجب ښکاره کولو چې کوم سړے چې خپل ځان د قتل نه د ساتلو دپاره د عیسائي نه مسلمان کولے شي په هغهٔ باندې د قندهار ، د کرمان، د جارجیا هومره لویو لویو صوبو د ګورنرۍ اعتبار څنګه کیدے شي. په ډیر هنر او په ډیر ترکیب سره هغهٔ د بادشاه په زړهٔ کښې ورو ورو دا خبره کښینوله چې هر کله ګورجین خان صرف د جارجیا په صوبه کښې د لږو اختیاراتو نه دومره ناجائزه فائده واخسته چې بغاوت ئې وکړونو اوس چې هغه د دریو صوبو خودمختاره حاکم شو نو څهٔ وجه کیدے شي چې هغه بیا بغاوت او د سرکشۍ جنډه وچته نهٔ کړي. دا خبرې یو په یو د بادشاه زړهٔ ته پریوتې. امیرانو ئې تائید وکړو او ورو ورو دا خبره د بادشاه په دماغ کښې ذهن نشین شوه چې ګورجین خان ته د بغاوت کولو او د مکملې خودمختارۍ د حاصلولو په مقصد کښې یو میرویس مانع وهٔ. په دې وجه ئې هغه د مخې نه لرې کړو هر کله چې میرویس ته دا معلومه شوه چې زما د ژبې اثر په بادشاه باندې په ښهٔ شان سره وشو نو په ځاے د دې چې قندهار ته راغلے وے د بادشاه نه ئې د حج کولو اجازت وغوښتو او د مکې شریفې په طرف روان شو. د

هغۀ ملګري د بادشاه په اجازت باندې خپل ملک ته راغلل او په پښتنو کښې ئې د اتفاق پیدا کولو کار شروع کړو.

دا خبره هم په دې ځاے کښې بیانول پکار دي چې د ایران خلق په عقیده کښې اهل تشیع (شیعه ګان) وو او پښتانۀ سنیان وو. د شاه عباس اعظم په وخت کښې هر کله چې پښتنو د ایران حکومت په ځان باندې قبول کړو نو ایرانیانو پښتنو سره دا اقرار کړے وۀ چې حکومت به د پښتنو په مذهبي معاملاتو کښې هیڅ دخل نۀ ورکوي. دا اقرار د شاه عباس د زمانې نه د ایران د طرفه په ښۀ شان سره زیر عمل راغلے وۀ لیکن چونکې د شاه حسین د دربار ملیان سخت متعصب بې علمه او نالائق وو په دې وجه هغوي پښتنو سره د ګورجین خان دا دومره سختي او تشدد په دې هم جائز ګڼلے وۀ چې پښتانۀ په عقیده کښې سنیان دي.
میرویس غوښتل چې د پښتنو د ایرانیانو برخلاف متفق کولو دپاره د دې مذهبي حربې نه هم کار اخستل پکار دي ځکه چې په اسلام کښې د یو مسلمان قوم د بل مسلمان قوم برخلاف بغاوت کول ناجائز دي د هغۀ دا خیال وۀ چې هسې نه چې د پښتنو عالمان د ازادۍ په جنګ کښې په دې وجه زمونږ برخلاف شي غرض دا چې میرویس مکې شریفې ته ورسیدو او د مکې شریفې او مدینې منورې د عالمانو نه ئې یوه فتوےٰ واخسته. د فتوې اول سوال دا وۀ:
(۱) آیا مسلمانانو له دا جائز دي چې هر کله په هغوي باندې د خپلو مذهبي فرائضو په ادائیګۍ کښې ظلم او زیاتے کیږي چې هغوي د خپل ځان ازادولو دپاره د حکومت برخلاف وسله وچته کړي؟
(۲) کۀ چرې د یوې قبیلې د مشرانو نه د یو کافر بادشاه په اطاعت باندې په زور بیعت اخستے شوے وي نو هغه بادشاه د خپل قول او اقرار نه وجاروځي نو د هغه قبیلې خلق د هغۀ بیعت نه ازاد شي او کۀ نه؟

د دې دوارو سوالونو جواب د مکې شریفې او مدینې منورې علماؤ په "او" کښې ورکړے وۀ. لوستونکو ته به د پورتنو واقعاتو نه په ښۀ شان سره دا خبره ښکاره شوے وي چې میرویس په دوارو سوالونو کښې په اصلي واقعاتو کښې هیڅ قسم غلط بیاني نۀ وه کړے. دې کښې هیڅ شک و شبه نشته چې د ایرانیانو مظالم په پښتنو باندې دومره زیات وو چې هغوي خپل مذهبي فرائض هم د سنیانو په طریقه نشو ادا کولے. او دې کښې هم شک نشته چې باوجود د شاه عباس اعظم د قول او اقرار نه د ایران ګورنر هغه شرطونه بالکل مات کړي وو.
هر کله چې میرویس دا فتوےٰ حاصله کړه نو بیا واپس اصفهان ته راغے په دربار کښې هغه بدستور ټولو امیرانو او وزیرانو سره راه و رسم وساتلو. بالخصوص د شاه حسین وزیر اعظم سره ځکه چې هغه د ګورجین خان او د هغۀ د ورارۀ کیخسرو خان سپه سالار د طاقت نه په زړۀ کښې ویریدلو او دا منشا ئې وه چې د هغوي موجوده طاقت دې کم شي. پس میرویس او

وزیر اعظم دواړو په متفقه کوشش سره د ګورجین برخلاف د بادشاه غوږونه ډک کړل. څۀ موده پس میرویس د وزیر اعظم په خلۀ او سفارش باندې د بادشاه نه خپل وطن ته د واپس تلو اجازت واخستو. بادشاه نۀ صرف هغۀ له د واپس تلو اجازت ورکړو بلکې هغۀ له ئې خپله زړه عهده کلانتار هم بیا واپس ورکړه او ورته ئې هدایت وکړو چې په خفیه طور باندې دې هغه د ګورجین خان په افعالو او اصلي ارادې باندې خیال ساتي. په دې موده کښې یوه ډیره عجیبه او نادره واقعه بله هم اتفاقاً پیښه شوه. چې له هغې نه میرویس پوره فائده واخسته. هغه دا چې پیټر اعظم د روس بادشاه یو ارمنے چې نوم ئې اسرائیل اورائي وۀ هغۀ له ئې د خدماتو په صله کښې چې هغه د روس د بادشاه دپاره د ترکو برخلاف کړي وو ملک ایران ته په طور د سفیر راولیږلو. او په شاهي فرمان باندې هغۀ ته دا اجازت ورکړو چې هرڅومره مال هغه ایران ته وړل غواړي په هغې دې هیڅ قسم محصول نشي اخستے او هر څومره نوکران چې هغه ځان سره بیائي د هغوي په شمار باندې دې څۀ قید نۀ وي. چونکې د روس د ډیر عمر نه په ایران باندې د قبضې کولو نیت وۀ او د ایران خلقو ته هم د دې خبرې علم وۀ. د دې سفارت چرچه یو څو ورځو کښې د اصفهان په کوڅه کوڅه کښې وشوه او د هر سړي په خلۀ باندې د روس د بادشاه د مفسدانه ارادو او د جارحانه کارروایو خبرې جاري شوي. ګرم خبرونه مشهور شول چې ارمني سفیر سره بیشماره مسلح فوځ راروان دے بیشانه ډیر مال او دولت او اسبابونه هغوي سره د دې غرض دپاره دي چې عین په اصفهان کښې د شاه ایران برخلاف خلقو له رشوتونه ورکړي او ورو ورو د خلقو زړونه ځان ته مائل کړي، دې کښې شک نشته چې د روس ډیر خلق اسرائیل اورائي سره د هغۀ د خاصې رتبې او د خاصو حقوقو په وجه د محصول نه د بچ کیدو په خاطر سره د ډیره ماله راروان وو. دې کښې هم شک نشته چې یورپین اقوام تول عمر د یو ملک د فتح کولو دپاره په هغې باندې د فوځ کشی نه وړومبے وړومبے د خپلو سفارتونو په ذریعه د هغې ملک په خلقو کښې د قسما قسم بې چینی او خانه جنګو پیدا کولو کوشش کوي. ایرانیانو ته د روس د بې ایمانی علم وۀ په دې وجه هغوي په زړونو کښې د دې فوځ په راتلو بالکل خوشحال نۀ وو. د هغوي دا خبره په ذهن کښې کښیناستله چې دا سفارت په حقیقت کښې د ایران د مسخر کولو دپاره پیش خیمه ده. خلقو کښې دا خبره هم مشهوره شوه چې اسرائیل اورائي په دې وجه د دې کار دپاره منتخب شوے دے چې هغه ارمن شهزاده دے. د ایران د خلقو د خوئ بوئ نه ښۀ واقف دے او د خپلو تعلقاتو او د خپل ملک د نزدیکت په وجه هغه د ایران په خلقو کښې ډیر زر اثر پیدا کولے شي او په هغوي کښې د بغاوت او د فساد جراثیم په ډیره لږه عرصه کښې خورولے شي. د بادشاه او د دربار د نورو اراکینو په دې خبرو وار خطا شو او د میرویس نه ئې هم پکښې مشوره واخسته. میرویس بادشاه ته ووئیل " دې کښې شک نشته چې معامله ډیره اهمه او

خطرناکه ده کهٔ چرې د زار روس منشا د یو پُر امن سفارت د رالیږلو وے نو هغه به د دې کار دپاره یو ارمني عیسائي څنګه منتخب کړے وهٔ. ارمني اصلي ستا رعیت وهٔ لیکن چونکې هغه د مذهب نه عیسائي دے او ارمینیا د زور شاهي خاندان نه دے د دې دپاره د زار روس د هغهٔ د رالیږلو مطلب دا دے چې اسرائیل اورائي دې عین د بادشاه په قرب و جوار کښې د بغاوت او د سازش اسباب پیدا کړي ولې کهٔ مونږ ته د جارجیا د وفاداری یقین وي نو روس او ارمینیا زمونږ هیڅ نشي کولے مګر چونکې جارجیا ډیرې لږې ورځې شوې دي چې بغاوت کړے وهٔ او د ګورجین خان رشته دار اوس هم د روس دارالحکومت سینټ پیټرزبرګ کښې موجود دي او علاوه د دې نه چونکې ګورجین خان په اصل کښې د عیسوي مذهب نه دے په دې وجه دا هیڅ د تعجب خبره نهٔ ده کهٔ چرې دا ارمني عیسائي د روس په وینا باندې د دې دپاره ایران ته راغلے وي چې عین په موقع باندې دې هغه د اصفهان او ګورجین خان د قندهار، جارجیا او د کرمان صوبې زمونږ برخلاف وچتې کړي او د ایران دارالحکومت دې د چارچاپیره نه راګیر کړي." دې دلائلو او دې واقعاتو د بادشاه په زړهٔ کښې د شکونو یو سیلاب پیدا کړو. د هغهٔ دا یقین وشو چې د ګورجین خان د لاسه زما سلطنت په خطره کښې دے لیکن دا وخت د ګورجین خان طاقت دومره زیات شوے دے چې د بادشاه دا خیال وهٔ چې کهٔ چرې زهٔ د ګورجین خان نه د دې دریو صوبو ګورنري اخلم نو غالباً چې هغه به انکار وکړي او د انکار نتیجه به بغاوت وي. د روس نه د ویرې په وجه هغهٔ د اسرائیل اورائي سفارت هم نشو واپس کولے. د دې دپاره ئې فوراً میرویس قندهار ته پخپلې زړې عهدې کلانتار باندې راولیږلو او ورته ئې هدایت وکړو چې هغه دې د ګورجین خان په اصلي ارادو په ډیر غور سره نظر لري.

د بادشاه حقیقت کښې دا مطلب وهٔ چې د میرویس په وجه د ګورجین خان شاهي او وسیع اختیارات نیم کړي. میرویس نور د خدائے نه څهٔ غوښتل؟ هغه قندهار ته د کرمان او سیستان په لار باندې راروان شو په لاره کښې هغهٔ د پښتنو ټولو قبیلو سره جرګې وکړې او د اتفاق او ورورولۍ سبق ئې ورته ورکړو. چونکې میرویس د خپل قوم یو ډیر مخلص او خیرخواه وهٔ او د پښتنو په رایوځائے کولو کښې د هغهٔ خپل هیڅ ذاتي غرض نهٔ وهٔ په دې وجه هغه په هر ځائے کښې کامیاب وهٔ او چونکې د هغهٔ قوم مظلوم وهٔ او هغهٔ د خدائے مخلوق د یو غیر قوم د ظلم نه بچ کولو. د دې دپاره خدائے تعالیٰ ټول واقعات د هغهٔ حسب منشا پریښول. چې څهٔ وخت هغه قندهار ته راورسیدو نو وې لیدل چې ګورجین خان ظلم او سختې د حد نه زیاته کړې وه او د پښتنو ټولې قبیلې د هغهٔ په آهني پنجه کښې بیوسه پرتې وے. هغوي ځان خلاصول غوښتل، قرباني ته هم تیار وو لیکن هغوي ته د یو قابل مشر او یو همدرد دوست ضرورت وهٔ. میرویس خدائے تعالیٰ د دې مظلوم قوم د دادرسي دپاره

راواستولو. میرویس د راتلو سره ګورجین خان ته د خپل منصب فرمان وښودلو. ګورجین خان اول خو ډیر په طیش کښې راغلو مګر هغه هم ګرګ باران دیده وهٔ صبر ئ وکړو او میرویس ئ پخپله عهده باندې مقرر کړو. کوم سړے چې هغهٔ په ذلت او بې عزتۍ سره په حیثیت د شاهي قیدي اصفهان ته لیږلے وهٔ هغه اوس واپس خپل ملک ته په حیثیت د یو بااختیاره افسر هغهٔ له واپس راغے. په دې خبره هغه بیحده زیات غصه شو مګر چونکې د فوځ اکثره حصه ئ واپس لیږلې وه په دې وجه ئ د بادشاه نه بغاوت کول مناسب ونهٔ ګڼل. مګر لکه چې د هر یو استبداد پسند حاکم لار وي هغهٔ عامو خلقو ته دا ښودل غوښتل چې په میرویس او په ګورجین حان کښې، ګورجین خان زیات با اختیاره او د رعب داب خاوند دے.

چنانچه یو څو ورځې پس هغهٔ میرویس سره د نوے دشمنۍ بنیاد کښیښودو او د میرویس نه ئ د هغهٔ لور چې یوه ډیره حسینه او ښکلې بي بي وه پخپل حرم کښې د راوستو دپاره وغوښتله. کوم پیغام چې هغهٔ میرویس ته په دې باره کښې استولے وهٔ د هغې نه معلومیده چې هغه دا بي بي په طور د منکوحې نهٔ غواړي بلکې هغه په طور د داشته وینزې په کور کښې ساتل غواړي. میرویس لا مقابلې ته تیار نهٔ وهٔ مګر چونکې دا خبره د هغهٔ د غیرت، د عزت او د پښتو نه بالکل برخلاف وه. د دې دپاره هغه دې خبرې منلو ته بالکل تیار نهٔ وهٔ. هغهٔ ته دا معلومه شوه چې ګورجین خان زما ذلیل کولو او په قوم کښې سپکاوي پسې دے. هغهٔ د پښتنو د قبائلو مشران خپلې حجرې ته راوغوښتل او هغوي ئ په دې خبره پوهه کړل چې دا یوازې د هغهٔ سپکاوے نهٔ بلکې د ټولو پښتنو رسوائي ده. هغهٔ خپلې قبیلې ته په ډیرو مؤثرو الفاظو کښې تقریر وکړو. د هغهٔ د تقریر اخري الفاظ دا دي :

”د قومي مفادو تقاضا دا وخت دا ده چې مونږ ټول دا وخت خپل کور جوړ کړو او اتفاق یو کړو او خپل عزت او اقتدار برقرار وساتو. د دې مقصد حاصلولو دپاره ډیرې طریقې دي. مونږ له دا وخت د جرأت او تدبر نه کار اخستل پکار دي. کوم مار چې ویښ او بیدار وي هغه به ټول عمر په خوبولې ازمرې باندې برے بیاموم‍ي. مونږ له پکار دي چې خپلې تورې د ګلابو د ګلو د انبار د لاندې پټې کړو او کهٔ چرې ستاسو په ما باندې پوره اعتبار وي نو تاسو خپل عزت او ځان زما عقل ته وسپارئ او زما تجویزونه او ارادې ځان سره پټې او محفوظې وساتئ.“

دا واقعه په کال 1708ء کښې شوې ده. هر کله چې میرویس د خپل قوم اعتبار حاصل کړو نو ګورجین خان ته ئ د هغهٔ د تجویز منظورولو سوال جواب ولیږلو مګر په ځاے د دې چې خپله لور د هغهٔ کور ته ولیږي یوه خپله وینزه چې هغه په شکل ډیره حسینه او ښکلې وه د هغهٔ کور ته د کمخواب او زربفتو په جامه ملبوسه ورولیږله. د پښتنو قوم دا وخت د لاس د ګوتو په شان یو شوے وهٔ او د قومیت جذبه د ورکوټي نه تر لویو او د وړو جینکو نه

تـر لـويو ښځو پورې په هر چا کښې راوچته شوې وه. په دې سازش کښې دې وينزې جينى د
خپـلې حـصـې کـار کـولو اقرار وکړو او د ګورجين خان محل ته په حيثيت د ميرويس د لور
لاړلـه. ټـول قوم او دې جينى دا سربسته راز هيچا ته ښکاره نۀ کړو او نۀ ګورجين خان او نۀ د
هـغـۀ فوځ په اصلي خبره باندې خبر شو. هر کله چې ګورجين خان ته دا معلومه شوه چې اوس
ميرويس زما سخر شو او زۀ ئې زوم شوم نو هغۀ په ټولو ملکي معاملاتو کښې هغۀ سره مشورې
او مصلحت شروع کړو.

د پښتـنـو قـوم اګـرچې پـه ظاهره يو شوے وۀ ليکن ميرويس د هغوي د اتفاق بنياد په
قـومـي طـريقه باندې ايښودل غوښتل او د دې دپاره د ډيرې کافي مودې ضرورت وۀ. شپه او
ورځ هغه او د هغۀ ملګري د دې کار په تکميل کښې مصروف وو او چې څۀ وخت يقين راغے
چې پـه قام کښې اتفاق پيدا شو نو په خپلې کاميابى کښې ئې هيڅ شک پاتې نۀ شو. د علانيه
بـغـاوت پـه لار کښـې هـغـۀ ته د جارجيا هغه قومونه مانع وو چې چا به شپه او ورځ د ګورجين
خـان د محل حفاظت کولو. څۀ موده پس واقعات دا شان پيښ شول چې د پشين ترينو پښتنو
د غـربت او نادارى په وجه د ماليې په ادائيګى کښې ليت و لعل وکړو. ګورجين خان غوندې
سـړي دپـاره د هـغوي برخلاف د فوځ کشى دا کافي بهانه وه. چنانچه هغۀ فوراً د نور فوځ په
غير موجودګى کښې د خپل جارجي فوځ يوه دسته د هغوي د سرکوبى دپاره وليږله. قريباً زر
يـا پـنـځـلـس سـوه سپاهيان ئې د قلعې د حفاظت دپاره ځان سره وساتل. هر کله چې د قندهار
عـلاقه د جارجيانو د فوځ نه خالي شوه نو ميرويس له دا موقع د ډيرې مودې د صبر او استقلال
نـه پـس پـه لاس ورغـلـه. هـغۀ د ګورجين خان د قابليت او ترينو برخلاف د فوري کارروايى
تـعـريف وکـړو او ورتـه ئې ووئيـل چـې دا خـلق بغير د تورې د زور نه نۀ سميږي. بيا ئې د هغۀ
دپـاره پـخپـل يـو کـلـي کښـې چـې د قندهار نه د نيمې ګينټې په مزل باندې وۀ ډوډى وکړه.
ګـورجـيـن خـان سـره د خپـلـو نـوکـرانو او مسلح سپاهيانو په ډير شان او شوکت او په ډيرې
دبـدبـې د ميـرويـس ځاے ته راغے. په دې اثنا کښې ميرويس په دغه شپه دا شان انتظام وکړو
چې قـندهار ته هرڅومره لارې راغلې وے هغې کښې ئې مسلح پښتانۀ ځاے په ځاے کښينول
او پـخپـله د ګورجين خان په ضيافت کښې مشغول شو. د ګورجين خان استقبال هغۀ د هغۀ د
رتبـې مـطـابـق پـه ډيـر ادب سـره وکـړو او علاوه د ګډانو د غوښو او د ښۀ پلاؤ نه ئې هغۀ ته د
خـراسـان ښـائسـتـه انـګـوري شـراب کښيښودل. چونکې ميرويس خان يو متقي او پرهيزګار
مسلمان وۀ او ګورجين خان په اصل کښې عيسائي او د جارجيا عيش پرست انسان وۀ. د دې
دپـاره هـغۀ او د هغۀ نوکرانو د ډوډى نه پس دومره شراب وڅښل چې بالکل بيهوشه شول او
پخپل خپل ځاے اودۀ شول. ميرويس بيدار وۀ او لکه د ازمري په شان د خپل ښکار د نيولو په
انـتـظـار کښـې وۀ. ګـورجـيـن خان سره د خپلو سرو د ميرويس په دام کښې ونښتو. او هر کله

چې گورجین خان او د هغهٔ سپاهیان د شرابو په نشه کښې مخمور پراتهٔ وو میرویس او د هغهٔ سړو هغوي په خپل خپل ځاے تهه تیغ کړل. دا واقعه په کال 1709ء د میرویس د وینزې د وادهٔ کیدو نه یو کال پس وشوه.
د دې واقعې خبر بغیر د میرویس او د هغهٔ د سړو نه بل هیچا ته ونشو او نهٔ هغوي د خپل تجویز په کامیابۍ کښې د څهٔ جوش و خروش نه کار واخستلو ځکه چې د قندهار په قلعه کښې څهٔ جارجي فوځ پروت وهٔ او په ښار باندې هم د هغوي قبضه وه. مګر میرویس خپل تجویزونه د وړومبے نه ډیر ښهٔ مکمل کړي وو او هیڅ شے ئ اتفاق او قسمت ته نهٔ وهٔ پریښے. هر کله چې هغهٔ ګورجین خان او د هغهٔ ملګري قتل کړل نو د ګورجین خان جامې ئ پخپله او د هغهٔ د نوکرانو جامې ئ خپلو سړو ته واغوستولې او د قندهار د قلعې په طرف باندې په اسونو سوارهٔ روان شول. خو څهٔ وخت چې هغوي د قلعې دروازې ته دننه شول نو د قلعې په محافظې دستې باندې ئ توري کښیښودې او نور پښتانهٔ چې جامې ئ نهٔ وے بدلې کړے رادننه شول او چې څهٔ جارجي فوځ قلعه کښې دننه وهٔ هغه ئ ټول قتل کړو. میرویس فوراً د قندهار د خلقو دپاره په هغه شپه یو فرمان د دې مضمون وویستو چې په قندهار کښې په طور د یو فاتح نهٔ یم راغلے بلکې زما مقصد دا دے چې پښتانهٔ د ایران د ظالم حکومت د لاس نه خلاص کړم. په دې وجه زما او زما د ملګرو د لاسه د هیچا مال او ځان ته به نقصان نهٔ پیښیږي. په شرط د دې چې هیڅوک دې هم یو جارجي یا ایراني له پناه ور نهٔ کړي. تاجکو، هزاروؤ، پښتنو غرض دا چې د قندهار د ښار ټولو باشنده ګانو چې د ایرانیانو د ظلم نه تنګ وو هغهٔ سره ئ امداد وکړو او شپه په شپه د قندهار ټول ښار د جارجین او د ایرانیانو نه پاک شو. قندهار چې د ډیر عمر نه د مغلو او ایرانیانو په منځکښې یو محکوم ښار وهٔ په کال 1709ء کښې ازاد شو.
په سبا باندې میرویس د قندهار ټول اولس راجمع کړو او ورته ئ یو فصیح او بلیغ تقریر وکړو په دوران تقریر کښې ئ ورته ووئیل چې زما واحد مقصد دا وهٔ چې تاسو د ایران د پنجې نه ازاد کړم او په دې کښې زما هیڅ ذاتي غرض نشته. بیا ئ ووئیل چې ازادي یو بې بها ګوهر دے چې د هغې حاصلولو دپاره قرباني او د ځان وینه تویول ضروري دي. د ایران ممتاز او لوے جرنیل اوس لاړو او هر کله چې قندهار د مغلو غوندې زبردست طاقت عین د هغوي د عروج په زمانه کښې مقابله کړې ده نو یقیناً پښتانهٔ د اصفهان د هیزانو په کامیابۍ سره مقابله کولے شي. هغهٔ خپل تقریر په لاندینو مبارکو او پاکو الفاظو ختم کړو. دا الفاظ د پښتنو په تاریخ کښې د سرو زرو په ټکو لیکل پکار دي. " کهٔ چرې تاسو کښې داسې خلق هم وي چې د ازادۍ د بیش بها جوهرو قدر کولو جرأت نهٔ لري هغه جوهر چې کوم خداوند کریم مونږ ته پخپل لوے فضل او احسان مفت په لاس راکړے دے نو هغوي دې دا وخت

ځان ښکاره کړي زمونږ د جرګې نه دي وځي مونږ به هغوي ته هيڅ قسمه تکليف يا ګزند
رسوؤ ولې هغوي دې په خوښی د يو نوي ظالم مالک په تلاش کښې د پښتنو د دې پاک
ازاد وطن نه وځي.''

کوم جواب چې پښتنو د دې تقرير نه پس ورکړو په هغې کښې د شک و شبهې
ګنجائش نهٔ وهٔ. هغوي ورته په اتفاق سره قسمونه وخوړل چې ترڅو پورې زمونږ په تن کښ
ځان دے ترهغې پورې به مونږ د خپلې ازادۍ دپاره نهٔ په مال صرفه وکړو او نهٔ په ځان. پس
دې نه هغهٔ هم په دغه شپه د پښتنو د قبائلو مشرانو پسې په علاقه کښې سوال جواب وکړو
په ټولو واقعاتو باندې ئې د هغوي په مخکښې تبصره وکړه. هغوي ته ئې دا واضحه کړه چې
ايراني منظم فوځونو دپاره د مقابلې باقاعده انتظام پکار دے او چونکې هغه وخت د پښتن
ټول طاقت خور اور پروت وهٔ هغوي ته ئې د فوځونو د ترتيب دپاره د يو مشر د منتخب کو
تجويز پيش کړو. ټول قوم بلا اختلاف رائې دا فيصله وکړه چې انتظامي اختيارات دې ټول
ميرويس په لاس کښې وي او قوم دې په جرګو سره د هغهٔ د ټولو تجويزونو او تدبيرو
تعميل کوي. هر کله چې ميرويس له قوم داسې وسيع اختيارات ورکړل نو هغهٔ د يو ډير لو
دورانديش جرنيل په شان پخپل قوم کښې د آئنده راتلونکو جنګونو دپاره فوځي تنظ
شروع کړو. فوراً ئې په هر ځاے کښې قلعه ګانو کښې سرې واچول، د ټوپکو دپاره ئې دا
تيار کړل او بيشانه ډير سرې ئې د ټوپکو جوړولو په کار کښې مشغول کړل. د قبائلو مشرا
ته ئې ووئيل چې هر يو دې د خپلې خپلې قبيلې نه قومي فوځ ته دستې راوليږي او درې د
پخپله قبضه کښې واخلي او مضبوطې شوکې دې پرې مقرر کړي.

ميرويس ته زياتي د فرصت موقع رانغله د ګورجين خان د قتل په څلورمه ورځ
قندهار د ښار د محافظ پښتنو يوه لويه رساله په راتلو وليده. دا د جارجيانو د فوځ هغه دسته
چې د ترينو د سرکوبۍ دپاره تللې وه او بيا د خپل سر عسکر د لاندې واپس قندهار
راروانه وه. د پښتنو دا قسم اتفاق وهٔ چې په ټوله لار دا خلق د ګورجين خان د واقعې نه چ
خبر نهٔ کړل. دا سوارهٔ په شمار کښې شپږ سوه وو او بيشانه منظم او جنګجو سپاهيان وو
چونکې د ګورجين خان د خپل وطن او قام خلق وو په دې وجه د ګورجين خان په هغو
باندې ډير اعتماد او اعتبار وهٔ. ميرويس هم په هغه وخت باندې خپل خلق په غير منظم طو
باندې راجمع کړل او جارجيان ئې د خپلو ټوپکو د ګولو پورې راتللو ته پريښودل. هر ک
چې هغوي په دا شان بې خبرۍ کښې د ښار ديوالونو ته رانزدې شول نو اول ئې پرې د توپو ب
وچلولو او بيا پخپله پنځو زرو پښتنو سورو سره په هغوي باندې لکه د تندر په شان راپريوت
د پښتنو لښکر نهٔ لا پوره پريږ زده کړے وهٔ او نهٔ هغوي ته د لږ وخت په وجه د پوره وسلې
حاصلولو موقع په لاس ورغلې وه. په دې وجه جارجيان د ميرويس او د هغهٔ د لښکر د لاس

په یوه سخته مقابله کښې د گرشک درو ته په تښتیدو خلاص شول. میرویس څو ورځې په هغوي پسې تعاقب وکړو او په ډیر تکلیف سره ئ هغوي ټول
بغیر د اتلسو تنو نه قتل کړل. د گرشک نه په اخوا ئ دو رویه سړي ودرول او پخپله قندهار ته راغے.

دې اتلسو تنو د ایران د بادشاه دربار ته د دې ټولو واقعاتو خبرونه ورسول. د اصفهان دربار ته هر کله چې دا خبر ورسیدو نو هغوي ټول سراسیمه خاطر شول. چونکې ټول امیران او اراکین سلطنت سخت استبداد پسند او متکبران وو د هغوي په دماغ کښې دا نۀ شوه راتلې چې پښتانۀ د ازادۍ خواهشمند دي او لا دا چې هغوي به د هغې دپاره د ایران غونډې زبردست طاقت په مقابله کښې خپل ځان او بال بچ اور ته غورځوي. مگر ایرانیان په غلطۍ وو کوم قوم چې یو ځل د ازادۍ خوند بیامومي نو بیا په خوښۍ د غلامۍ بیړۍ پښو ته نۀ اچوي. ایرانیان اوس په دې پوهه شو چې زمونږ د دومره سختۍ او د ناجائز سلوک نتیجه آخر بده شوه. پس مناسب دا دي چې پښتانۀ په څۀ چل ول باندې بیا د خپل حکومت د لاندې راولو او خپل دیرینه تعلقات هغوي سره قائم کړو. پس هغوي جاني خان نومے یو ایرانے په طور د سفیر میرویس له راولیږلو. کۀ چرې پښتانۀ په قلعه کښې د ایراني فوځ یوه دسته د ملک د حفاظت دپاره پریږدي نو د ایران بادشاه به د گورجین خان قتل میرویس او د هغۀ قام ته معاف کړي. او د دې سره ئ فوځي تیارۍ په قندهار باندې د فوځ کشۍ دپاره شروع کړې. سفیر قندهار ته راورسیدو او میرویس ته ئ د بادشاه پیغام ورکړو.

پښتنو ته اوس داسې خبرې د سپکاوي او د بې عزتۍ ښکاره کیدے. جاني خان چې د خپل بادشاه او د هغۀ د فوځونو د زور خبرې د څۀ حد نه ورتیرې کړي نو پښتنو له ئ دومره قهر ورروستو چې جاني خان ئ گرفتار کړو. د میرویس د جاني خان په گرفتارولو کښې دوه مطلبه وو یو خو دا چې د ایران حکومت ته دا قطعي طور باندې وښیي چې پښتانۀ بیا د ایران حکومت ته په خوښه او رضا تیار نۀ دي. او هرقسمه جنگ او مقابلې ته هغوي ملا تړلې ده. دویم مطلب ئ دا وۀ چې هغۀ د سفیر په نیولو د ایران فوځي تیارو ته تاخیر ورکړي. میرویس پخپله اندازه کښې بالکل درست وۀ. د دربار امیرانو ته چونکې دا معلومه نۀ وه چې جاني خان ولې دومره ډیره موده تیره کړه. هغوي یو بل سړے چې محمد خان د هغۀ نوم وۀ او د هرات گورنر وۀ او میرویس ئ ذاتي دوست وۀ او هغۀ سره مکې شریفې ته یواځې په ملگرتیا کښې تللے وۀ، قندهار ته په سفارت ولیږلو. د امیرانو دا خیال وۀ چې د محمد خان ذاتي تعلقات به په میرویس باندې ډیر اثر وکړي. هغوي ته دا معلومه نۀ وه چې څۀ وخت د یو قوم په مخکښې د هغوي د ازادۍ، د عزت او خودداری سوال درپیش وي نو ذاتي دوستۍ او تعلقات د هغې قوم په مشرانو باندې اثر نۀ کوي. بشرطیکه چې هغوي د ازادیدلو مصمم اراده کړے وي.

میرویس محمد خان ته ووئیل چې کهٔ چرې تهٔ زما ذاتي دوست نهٔ وې نو بیا به مې درله دا موقع هډو درکړې نهٔ وه چې دوستانو ته دې داسې ذلیل او رسوا کن تجویزونه پیش کړې وې او په دې ځاې به مې ستا خلاصې کړې وهٔ خو د سابقه تعلقاتو په وجه درته زهٔ څهٔ نهٔ وایم خو په قندهار کښې دې ځان سره حصاروم. په دې حیثیت نه چې زما دشمن به ئ بلکې د یو معزز میلمه په حیثیت به دلته ئ. میرویس محمد خان ته صفا ووئیل چې د پښتنو د بدل اخستو دا موقع ده کومه توره چې پښتنو د ایران د ظلم برخلاف د تیکي نه ایستې ده هغه به هیچرې هم د لاسه د هغې پورې ونهٔ غورځوي ترڅو پورې چې شاه حسین مونږ د تخت نه نهٔ وي غورځولې او خپل ملک مو د ایران د غلامی نه د همیش دپاره نهٔ وي خلاص کړې. شاه ایران اخر په کال 1710ء کښې د هرات ګورنر ته حکم ورکړو چې په قندهار دې فوځ کشي وکړي. دا فوځ صرف د ایراني سپاهیانو لښکر وهٔ او چونکې میرویس د ایران سپاهیان په بهادرۍ کښې د پښتنو په مقابله کښې ډیر کم ګڼل د دې دپاره فوراً سره د پنځو زرو سورو د هغوي د مقابلې دپاره ووتلو او ایراني فوځ له ئ شکست فاش ورکړو. په مخکښنو اتلسو میاشتو کښې د ایران بادشاه پرله پسې شلور ځله د میرویس د سرکوبی دپاره فوځونه راواستول لیکن هر ځلې ئ ماتې وکړه. په اخري جنګ کښې د ایرانیانو فوځ قریباً پنځهٔ زره د محمد خان ګورنر تبریز د کمان د لاندې د پنځو سوؤ پښتنو سورو سره مخامخ شول. ایرانیانو نهٔ صرف شکست وخوړو بلکې یو زر سپاهیان ئ په جنګ کښې قتل او زخمیان شول او محمد خان سره د دریو ځامنو هم پکښې ګرفتار شو.

په دې شکستونو باندې د شاه ایران د قهر او غضب څهٔ حد پاتې نهٔ شو او اراده ئ وکړه چې په یوه ډیره لویه پیمانه باندې په قندهار باندې بیا حمله وکړي. د ایران په ټولو صوبو کښې جارجیان د خپلې بهادرۍ اوشجاعت دپاره مشهور وو. ګورجین خان هم د اصل نه جارجي وهٔ. د هغهٔ نه پس د هغهٔ ورارهٔ خسرو خان چې یو ډیر بادماغ افسر وهٔ د هغهٔ په ځاې د جارجیا ګورنر مقرر شوې وهٔ. اخري شکست نه دوه میاشتې پس شاه حسین هغه راوبللو د خپلو فوځونو سپه سالاري ئ ورکړه او حکم ئ ورته وکړو چې په هر شان چې وي قندهار دې مسخر کړي. خسرو خان په ډیر شوق سره د خپل ترهٔ د قتل د بدل اخستو په نیت د قندهار په طرف سره د یو جرار لښکر راروان شو. او په زړهٔ کښې ئ قصد وکړو چې ترڅو مې غلجي او د پښتنو نور قبائل ورک کړي نهٔ وي په ارام به ژوند تیر نهٔ کړم. د ګورجین خان قتل د هغهٔ په اراده کښې یو زبردست استقلال او پختګي پیدا کړه. چونکې دې د ډیر قابلیت او د لویو ارادو خاوند وهٔ او د جنګ په فنونو کښې ئ مهارت لرلو. د جارجیا سپاهیان هغهٔ د فوځ په هراول کښې مقرر کړل او د فراه پورې بغیر د څهٔ مقابلې نه راوراندې شو. هغه ځاې کښې د هغهٔ فوځ خیمه زن شو او د هغه ځاې نه ئ خپل مخبران د میرویس د فوځ د نقل و

حرکت معلوموله دپاره په چارچاپیره ملک کښې واستول. د هغوي د خبرونو نه معلومه شوه چې میرویس درې بالکل غیر محفوظ حالت کښې پریښې دي او خپل فوځ ئې په یو ډیر مضبوط ځائے کښې راجمع کړے دے چې د ګرشک نه په لږه فاصله دے او د هلمند سیند په غاړه دے.

د میرویس دا اراده وه چې د هلمند نه په ښې غاړه یو فیصله کن جنګ د ایران فوځ سره وکړي او د سیند نه ئې پورې غاړه تلو ته چرې پرې نۀ ږدي. خسرو خان چې دا واؤریدل چې درې غیر محفوظې دي نو ډیر خوشحاله شو او په میرویس باندې د حملې کولو په نیت سمدستي وروړاندې شو. خسرو خان سره دیرش زره ایراني او دولس زره جارجي فوځ وۀ. پښتانۀ په شمار کښې ډیر لږ وو مګر د قومي جوش او د حریت د جذبې نه ډک وو. مګر میرویس په جنګ کښې شکست وخوړو او د ایران فوځ د هلمند سیند نه راپورې وتلو. خسرو خان د خپل برې نه فوراً فائده واخسته او د قندهار محاصره ئې په کال 12-1711ء کښې وکړه. میرویس اګرچې ماتې خوړلې وه مګر میدان ئې نۀ وۀ پریښې. د هغۀ دا یقین وۀ کۀ چرې محصورین قندهار د څۀ لږې مودې دپاره هم د قلعه بند کیدو تکلیفونه او مصیبتونه په ځان راښکل نو زۀ به د دشمن فوځ د بهر نه د هغوي د رسد رسانی د لارو د بندولو په ذریعه داسې تنګ کړم چې هغوي به په شکست مجبور کړم. مګر د قندهار د پښتنو استقلال پوره نۀ وۀ او هغوي لږه موده پس خسرو خان ته د صلحې دپاره درخواست وکړو. چونکې خسرو خان په خپلې سابقه فتح باندې ډیر غاوره وۀ او دا ئې خیال وۀ چې قلعه بند فوځ په ډیرې تنګسیا کښې دے نو هغۀ د غیر مشروط وسلې غورځولو نه سوا په بل څۀ شرط باندې د صلحې کولو نه انکار وکړو. قلعه بند خلقو چې د غیر مشروط متابعت په خطرناکو نتائجو باندې فکر وکړو نو په جنګ کښې د عزت مرګ ئې د قتل عام او د سپکاوي د مرګ نه غوره وګڼلو. هغوي ته دا ښکاره وه چې کۀ چرې مونږ بغیر د څۀ شرط نه وسله وغورځوله او ایراني فوځ له مو په قندهار باندې قبضه ورکړه نو خسرو خان او د هغۀ فوځ به د ګورجین خان او د هغۀ د سړو د قتل په بدل کښې مونږ او زمونږ اولاد قتل کړي. خسرو خان یو ښۀ قابل فوځي افسر وۀ مګر د سیاست او د انساني فطرت نه بې خبر وۀ. کۀ چرې دغه وخت هغۀ د قندهار خلقو سره په دې شرط صلح کړے وے چې د هغوي سرومال به په امان وي نو قندهاریانو به د ښار دروازې پرانستې وے او د ایران حکومت به یو ځل بیا په پښتنو قائم شوے وۀ. مګر هغۀ دا شان صلح منظوره نۀ کړه. او د قندهار خلقو تر اخر دم پورې د جنګ کولو فیصله وکړه. په دې اثناء کښې میرویس د ترین د کاکړو او د ابدالیانو قبیلې راجمع کړې او د خسرو خان د فوځ نه چارچاپیره دا شان پریوتل چې ایران سره د هغۀ د آمدورفت ټولې لارې بندې شوې. او د خرڅ خوراک سامان ئې هم ټول بند شو. خسرو خان قندهار ته د

راتـلـو په وخت کښې د پښتنو په کوم کوم ملک چې راتير شوے وۀ او کوم کوم ځاے ته چې د هغۀ لاس رسيدلے وۀ نـو د پښتـنو ښځې او بال بچ ئ ټول قتل کړي وو. د قندهار باشندو ګـانـو دا خيـال وکړو چې کۀ چرې خسرو خان کامياب شو نو زمونږ به هم دغه شان حال وي پس خسـرو خـان چـې هـرڅـومره حملې به ښار باندې وکړې پښتنو په ډيرې ځوانمردی او بهـادرۍ هـغه پسپا کړې. خسرو خان اوس د فوځ د خرڅ خوراک د لاسه ډير تنګ شو او د پښتنو د لاسه د هغۀ فوځ دوه برخې نيست و نابود شوے وۀ. د کاميابۍ هيڅ اميد هغۀ ته نۀ وۀ محـاصـره ئ وچته کړه مګر اوس په خسرو خان وخت تير شوے وۀ خو چې څۀ وخت هغه د قـنـدهـار د خـواوشا نه د ايران په طرف روان شو نو ميرويس سره د شپاړسو زرو پښتنو لکه د ګـلـې پـه شـان راورسيـدو. ايـرانـي فـوځ د ډيرې مودې د جنګونو په وجه بددله شوے وۀ. او چـونـکـې هـغـوي ډير د يو ظالم بادشاه په طرف دارۍ کښې وو د دې دپاره د هغوي په زړونو کښې د جـنـګ هغه جوش نۀ وۀ پاتې شوے چې کوم په ابتدا کښې په هغوي کښې وۀ. صرف خسـرو خـان سـره د يـو څـو جـارجي سپاهيانو د پښتنو مقابله وکړه او په جنګ کښې سره د ډيرو سپـاهيـانو قتل شو. د ايرانيانو په ديرش زره فوځ کښې صرف سل سپاهيان ژوندي پاتې شـول. دا واقـعه په کال 1713ء کښې وشـوه. شـاه ايـران يـو بل کوشش بيا په کال 1714ء کښـې وکـړو او لـوے فـوځ ئ د يـو مشهـور جـرنيـل محمد رستم د کمان د لاندې د غلجو د سرکوبۍ دپاره راواستولو مګر چونکې ايرانيان د ظلم ملګري وو او پښتانۀ د خپل ملک او د قام پـه نـنګ ولاړ وو. څـو څـو جـنګونه د محمد رستم خان او ميرويس وشول مګر په هر يو جنګ کښـې مـحـمد رستم شکست وخوړو او اخر دا چې محمد رستم په تيښته باندې خپل ځـان د پښتنو د تورو نه خلاص کړو. د دې نه ميرويس د قندهار او د هغې نه جنوب او مشرق ته د ټولې علاقې مالک شو.

شـاه حسيـن د دې نـه پـس بيـا بل فوځ د قندهار په لورې راونۀ ليږلو. ميرويس د دې فـرصـت نـه فـائده واخسته او پخپل ملک کښې د قومونو او د قبيلو په منځ کښې تنظيم پيدا کـول ئ شـروع کړل.( د قندهار علاقه چې کوم د هغۀ په قبضه کښې راغلې وه د هغې د قبلې حـد تـه د فـراه پـورې چـې په هغې کښې د هلمند او د لورې درې هم شاملې دي لګيدلے وه.) مـاسـوائ د هـرات د ابداليانو نه نورو ټولو پښتنو قبيلو د هغۀ مشرۍ په خپل ځان باندې ومنله او هـغـوي کښې د قوميت جذبه داسې پيدا کړه چې وړومبے د دې نه په پښتنو کښې نۀ وه پيدا شـوې. د پښتـنـو دا ننګيالے افسوس دے چې د خپلو فتوحاتو نه پس ډيره موده ژوندے پاتې نۀ شـو او په کال 1715ء کښـې د نـومبـر پـه ميـاشت کښې د دې دنيا نه رخصت شو. په پښتنو کښـې هـغـه ډير بهادر جرنيل او قابل سياستدان، پخپل قوم او وطن باندې مئين انسان مشهور وۀ. اګـر چـې د پښتـنـو او د هـغـوي د ملک د استحکام دپاره ډيره لږه موقعه ورته حاصله وه

مګر کوم روح چې د هغهٔ د مرګ په وخت کښې په قام کښې پیدا شوې وهٔ هغه د میرویس مرګ سره مړ نهٔ شو.

د میرویس دوه ځامن پاتې شول د یو نوم میرمحمود او د بل نوم میر حسین وهٔ. میرمحمود هغه وخت د اتلسو کالو او میرحسین د اوولسو کالو وهٔ چونکې دواړه د پښتنو په خیال کښې کشران وو د دې دپاره هغوي د بادشاه د انتخاب دپارهٔ یوه جرګه وکړه او میر عبدالله د میرویس کشر ورور ئ د مشرۍ دپاره خوښ کړو. په میرعبدالله کښې د شجاعت او بهادرۍ هغه صفتونه موجود نهٔ وو کوم چې په میرویس کښې وو. د قوم کوم توقعات چې د هغهٔ نه وو هغهٔ هغه پوره نهٔ کړې شو. میرعبدالله د طبیعت نه کمزورے او ویریدونکے وهٔ. نهٔ په هغهٔ کښې هغه عالي دماغي وه چې کومه په میرویس کښې وه او نهٔ په هغهٔ کښې دوراندیشي وه چې په کومه باندې میرویس ممتاز وهٔ. د میرویس دپاره فاتح او حکومت کونکے ایران دومره خطرناک او د رعب ځیز نهٔ وهٔ لکه څومره چې شکست خورده او ماتې خوړلے ایران د میرعبدالله دپاره وهٔ. په هر قوم کښې بعضې داسې کمزوري او ویریدونکي خلق موجود وي چې یوه معمولي ذمه داري او یو معمولي مهم هغوي عین د موقع په وخت کښې ویروي او د دې کمزورۍ او بزدلۍ په وجه ګټلے جنګ په دشمن د خپلهٔ لاسه بائلي. د مشرۍ او د رهبرۍ دپاره نهٔ صرف د دماغ او عقل ضرورت وي بلکې د یو لوے زړهٔ او د مستقل مزاج چې په لویو لویو مشکلاتو او سختو سختو مصیبتونو کښې هم د خپلو مصممو ارادو نه نهٔ رااوړي. میرعبدالله او د هغهٔ ملګري هیڅ بې هیڅه د ایران شاهي شوکت نه په زړهٔ کښې ویریدل او د ذلت صلح له ئ د عزت په جنګونو باندې ترجیح ورکړه. د محکومیت په وجه دا صفتونه اکثر په مفتوحه قوم کښې راځي او هغوي د غلامۍ د ظاهري امن په نقصانونو کښې او د ازادۍ او خودمختارۍ د جدوجهد په فوائدو کښې څهٔ تمیز نشي کولے. د هغوي ورو ورو امن سره دومره محبت او مینه پیدا شي چې عزت او خودداري هم په هغې باندې قربان کړي. او دغه شان خپل قومي ژوندون د همیش دپاره بائلي. په غلجو کښې هم داسې یو ټولے موجود وهٔ چې ایران سره ئ د خپلې خودمختارۍ او ازادۍ په بدل کښې د جنګ کولو نه ګریز کولو. چنانچه مید عبدالله د تخت نشینۍ نه پس د ټولو نه وړومبے یوه جرګه شاه حسین له ورولیږله چې مونږ د ایران شهنشاهیت په دې شرطونو منلو ته تیار یو:

(۱) شاه ایران دې هغه سالانه خراج چې د میرویس د بغاوت نه وړومبے به د هغوي نه اخستے شو هغه دې پښتنو ته معاف کړي.

(۲) د بل یو ملک فوځ دې هم زمونږ علاقې ته شاه ایران نهٔ رالیږي.

(۳) د قندهار د صوبې حکومت دې د میرعبدالله په ټبر کښې موروثي شي.

دا شرطونه اګرچې قریباً قریبا د خودمختارۍ مترادف ښکاره کیدل او د ایران یو

معمولي مشري ئ د دې دپاره تسليموله چې کۀ چرې څوک په قندهار باندې حمله وکړي
چې ايـران د هـغې مدافعت وکړي. مگر پښتنو ځلمو ته د ايران مشري په هيڅ صورت کښې
مـنل منظور نۀ وو. هغوي د محکوميت هيڅ قسم تعلقات ايران سره ساتل نۀ غوښتل. هغوي
د ايـران د بـادشـاه د لانـدې صـوبـه جـاتـي خـوداختيـاری کښې او غلامی کښې هيڅ فرق نـ
ښکـاريدو. او هغوي ته د هغوي د ازادی په لمن باندې د ايران د تابعداری تور داغ ډير بدنم
ښکاره کيدو. هغوي وئيل چې د ازاد قومونو په قطار کښې د دې شرطونو په موجودگی کښې
زمـونـږه شـمـار نشـي کيـدے او د نـورو قـومـونـو سره مساوات او برابري مونږ په دې نۀ شـ
حـاصـلـولے. ميـرعبدالله او د هغۀ د ډلې خلقو د ازادی هغه بيش بها انعام چې کوم ميرويس
پښتـنـو د ويـنـو پـه زور باندې د شاه حسين د لاسه په جنگ اخستے وۀ بلاوجه ايرانيانو ته بـ
واپس ورکولو.

قـريبـاً ځـلـور مياشتې دوئ شاه ايران سره د ذلت نه ډکې دا جرگې وکړې او اگرچې
پښتانۀ د ايران نه په بغاوت کولو بالکل په حق او انصاف وو او هغوي ته د خپلې ازادی برقرا
سـاتلو دپاره د هيڅ قسمه قرباني کولو دريغ نۀ وو کول پکار مگر د ميرعبدالله په زړۀ کښې د
خـوف وۀ چـې کۀ چرې شاه حسين بيا د قندهار په ملک باندې فوځ کشي وکړي نو د پښتنـ
مالونه او ځانونه به توئ شي او بيشماره مصيبتونه او تکليفونه به په ټول قوم باندې راشي. اول
اول د مير عبدالله د دې بې غيرتی نه پښتانۀ زلمي خبر نۀ وو مگر هر کله چې ايرانيانو هغوي تـ
پـه هـغوي کښې د خانه جنگی او بې اتفاقی پيدا کولو دپاره ميرعبدالله او د هغۀ د ډلې د خلقـ
دا تـجويزونه ښکاره کړل نو د زلمو د قهر او د غضب څۀ حد پاتې نۀ شو. ميرمحمود دا خيال
وکـړو چـې د کـومـو څيـزونـو د حاصلولو دپاره زما پلار دومره قرباني کړې وے هغه برناحق
زمـونـږ د لاسـو نه وځي. ميرمحمود او د هغه ډله په هيڅ شان سره د ايران شهنشاهيت منلو تـ
تيـار نۀ وو. مير محمود د خپل پلار په وخت کښې هم په کم عمری کښې د خپلې بهادری او
شـجـاعـت ډير ثبوتونه ورکړي وو. هغۀ خپل ترۀ ته ووئيل چې ايرانيانو په سم جنگ کښې پـ
مونږ بيلات کړے دے او د پښتنو زلمي اوس هم د ايرانيانو سره د جنگ او مقابلې دپارۀ خپل
ځان او مال داؤ کولو ته تيار دي نو بيا ولې خپل ځان او خپل ملک په دنيا کښې شرموئ. هغـ
تـه معلومه وه چې ايراني فوځ پښتنو سره د جنگ کولو قابليت نۀ لري. او ميرعبدالله صرف د
ويـرې او د خوف نه خپل ځان او د پښتنو قوم رسوا کوي. د دې دپاره هر کله چې مير محمود
تـه معلومه شوه چې ميرعبدالله د پښتنو زلمو خبرو اوريدو ته تيار نۀ دے نو فيصله ئ وکړه چې
بـادشـاه مـعـزولـول پـکار دي او د پښتنو د مشری او رهبری واگې پخپل لاس کښې اخستل
پـکار دي. هغۀ فوراً د خيلونو مشران چې قريباً په شمار کښې څلويښت تنه وو جرگه کړل او
ورتـه ئ د پـلار پـه شـان ډيـر فـصيح او بليغ تقريرونه وکړل بيا ئ هغوي ته خپله منشا ښکاره

کړه. هغوي ورسره فوراً متفق او یک زبان شول او ټول په جمع د بادشاه د محل په طرف روان شول. ورتلو سره هغهٔ او د هغهٔ ملګرو په محل قبضه وکړه بیا میرمحمود د خپل ترهٔ کمرې ته پخپله ورننوتو او پخپل لاس ئ میرعبدالله قتل کړو. د پښتنو زلمو او د قوم سردارانو چې هرکله د میرعبدالله د قتل واؤریدل نو ډیر خوشحاله شول او فوراً ئ د هغهٔ په ځاے میرمحمود بادشاه منتخب کړو. میرعبدالله او د هغهٔ غداره ډله هم هغهٔ سره تباه شوه. دا واقعات په کال 1716ء کښې وشول.

میرمحمود د خپل پلار پشان فیاض، بهادر، هوښیار او محنتي وهٔ. ارام او سستي هغهٔ نهٔ پیژندله او په معرکهٔ کارزار کښې د هغهٔ شجاعت د تهور درجې ته رسیدلے وهٔ. مګر چونکې زلمے او ناتجربه کار وهٔ په دې وجه په خوئ کښې تُند او په عمل کښې ظالم وهٔ. د ایرانیانو نه د بدل اخستو جذبه د هغهٔ په زړهٔ کښې هم دغه شان تیزه وه لکه څنګه چې د میرویس په زړهٔ کښې وه. د هغهٔ دا نیت وهٔ چې په هر شان چې وي چې د ایران د بادشاه او د هغهٔ د خاندان نه د هغوي د ټولو مظالمو بدل واخلم چې کوم د شاه حسین په وینا باندې ګورجین خان او د هغهٔ فوځ پښتنو سره تر اتو کالو پورې کړي وو. دا موقع ډیره زر د هغهٔ لاس له راغله. د میرمحمود د تخت نشیني نه ډیره لږه موده پس ایراني ګورنر هرات محمد زمان خان یو داسې شرمناک فعل د ابدالي قبیلې یو خانزاده سره وکړو چې د ابدالیانو ټولې قبیلې کومې چې د هرات په خواوشا کښې وسیدلې هغوي د ایران خلاف بغاوت وکړو. د ایران په امیرانو کښې قسما قسم بدکاری په هغه زمانه کښې پرتې وے. دا محمد زمان هم یو ډیر بدمعاش، بدچلن او بچه باز وهٔ. حیات سلطان د هرات په علاقه کښې د ابدالیانو د سدوزو قبیلې مشر وهٔ د هغهٔ یو ډیر ښائسته او خوش شکله زوے وهٔ چې نوم ئ اسدالله وهٔ. دې بدذات ایراني د هغهٔ پلار حیات خان ته ووئیل چې اسدالله زما ځاے ته راولیږه. حیات سلطان یو کمزورے او بیوقوف سړے وهٔ. د محمد زمان خان د خوشحالو دپاره دې بې غیرته سدوزي خپل زوے د محمد زمان ځاے ته ورواستولو. اسدالله د هیڅ نه نهٔ وهٔ خبر هغه د محمد زمان ځاے ته لاړو. هغلته هغه محمد زمان په زور وشرمولو او ډیرې ورځې ئ پخپل ځاے کښې جبراً حصار کړو. د ابدالیانو د قبیلې ډیره لویه حصه دا وخت د قندهار په قطب کښې عین تر هراته پورې اباده وه. هغوي د ایران باجګزاري په هغه شرطونو باندې منلې وه چې کوم غلجو د شاه عباس اعظم سره فیصله کړې وه. یعنې دا چې د هغوي اندروني او قبائلي معاملات هم د هغوي مشران به فیصله کوي او د ایران د حاکمانو به په هغې کښې هیڅ دخل نهٔ وي. محمد زمان خان ته په دې ورځو کښې حکم شوے وهٔ چې هغه دې سره د ابدالیانو د قبائلو د میرمحمود او د غلجو د قبیلو د سرکوبي دپاره د قندهار په طرف روان شي. هغه خپل فوځ سره په دې مهم باندې قندهار طرف ته راروان وهٔ چې څهٔ وخت د اسدالله دا واقعه پیښه شوه.

اسدالله یو ډیر ځوانمرد او غیرتي زلمے وۀ خو چې ځۀ وخت هغۀ موقع بیاموندہ نو دې د ایراني بدمعاش د ځاے نه راوتښتیدو او فوراً ئ د خپلې قبیلې ټول مشران خپل ځاے ته راوغوښتل. هغوي په اسدالله باندې دا شان ننګ وخوړو چې ټول بغاوت ته تیار شول. اسدالله د ټولو نه وړومبے د خپل پلار نه بدل واخستو او هغه ئ قتل کړو او د هغۀ په ځاے د خپلې قبیلې مشر شو بیا ئ د خپلې قبیلې زلمي ځان سره کړل او په زمان خان باندې ئ (چې دا وخت د زمینداور په علاقه کښې مقیم وو) ناساپه دا شان حمله وکړه چې ټول ایراني فوځ له ئ شکست ورکړو او زمان خان ئ پخپل لاس حلال کړو. د هغې نه پس هغه د خپل لښکر سره هرات ته شواشو روان شو او په هرات کښې ئ چې څۀ ایراني فوځ بیاموندو هغه ئ ټول تهه تیغ کړل. او په کال 1717ء کښې ئ د مکملې خودمختاری اعلان وکړو. دغه شان د هرات او قندهار دواړه صوبې د ایران د ظلم و ستم نه خلاصې شوې.

په دې اثنا کښې اُزبکو او کردو د ایران په مختلفو صوبو کښې دا شان لوټ مار شروع کړو چې قریباً د اصفهان خواوشا ته راورسیدل. د شاه حسین او د هغۀ د بدچلنو اراکینو د سترګو د وړاندې د سلطنت ټوکړې ټوکړې کیدل شروع شول. بادشاه او د هغۀ ټول درباریان د میدان جنګ د تکلیفونو د برداشت کولو نه ویریدل. هغوي سره داسې جرنیل نۀ وۀ چې د ایران فوځ ئ په بهادری چا سره جنګولے وے. د سستی د عیش او د ارام په وجه هغوي ټول بزدلان شوي وو او د جنګ خطرو ته ئ ځان نشو نیولے. هرڅومره چې هغوي د هرات او د زمینداور شکست خوردہ فوځ ته بیا په هرات باندې د حملې کولو ترغیب ورکړو مګر چونکې د هغوي څوک بهادر او عقلمند رهبر او مشر نۀ وۀ پاتې شوے هغوي د تلو نه انکار وکړو. هرکله چې هغوي په فوځ کښې داسې یو لائق سړے بیا نۀ موندو نو هغوي د سپه سالاری عهده یو داسې سړي ته پیش کړه چې هغه د قاضي القضاۃ د عهدې نه د شاه ایران او د هغۀ د اراکینو د بددیانتی او بدچلنی په وجه استعفیٰ ورکړې وه. دا سړے علاوه د بهادری نه ډیر راستباز او نیک چلنه وۀ او چونکې پخپلو فیصلو کښې به هغۀ د انصاف د لارې نه د یو ویښتۀ برابر هم نۀ اخوا دیخوا کیدو په دې وجه د بادشاه او د هغۀ وزیرانو هغۀ سره ورانه شوه او هغه د خپلې عهدې نه مستعفي شو. مګر اوس د سلطنت د تنګسیا په وخت کښې هغۀ ته شاه حسین او د هغۀ ښځونکو درباریانو منت وکړو چې تۀ د سپه سالاری دا ذمه داره عهده قبوله کړه او د ایران قومي عزت د رسوا کیدو نه بچ کړه. د دې امیر نوم صافي قلي خان وۀ او پنځۀ دیرش زره فوځ د هغۀ زیر کمان وۀ. د هغۀ په ذمه اول د اُزبکو د ایران نه ویستل او بیا د هرات او قندهار مسخر کیدل وو. د فوځ په تنظیم او وسله باندې ډیر رقم خرځ کړې شو. یوه نوې توپخانه او په ایشیا کښې د اعلیٰ نه اعلیٰ اسلحه د هغوي دپاره واخستې شوه. شاه ایران د هغوي د جذباتو او جوش وچتولو دپاره به پخپله د

هغوي پريږد کتو دپاره راتلو. د هغوي د کاميابی دپاره د ايران په هر يو جماعت کښې دعاگانې وغوښتې شوې. اخر فوځ روان شو او د اصفهان ښځې او نر د هغوي د رخصت کولو دپاره په لارو کوځو کښې ولاړ وو. صافي قلي خان اول د اُزبکو مقابلې ته ورغے او په اوله حمله کښې ئ دولس زره اُزبکو له د ايران د سرحد په خوا کښې شکست ورکړو. په دې فتح د ايراني فوځ زړهٔ ډير غټ شو او د ابداليانو مقابلې ته روان شو.

اسدالله د پنځلسو زرو پښتنو په سر کردگی کښې د هغوي مقابلې ته راووتو چونکې د هغهٔ لښکر د ايراني فوځ په شمار کښې غوټ نيم وهٔ او توپې هم ورسره نهٔ وې. په دې وجه هغهٔ دا خيال وکړو چې زما برے په دې کښې دے چې د ايرانيانو په فوځ فوراً حمله وکړم او لاس په لاس هغوي سره جنگ وکړم. دواړه فوځونه د کاريز کلي په خوا کښې مخامخ شول. او يو نهايت خونريز جنگ وشو. ايرانيان په شمار کښې ډير زيات او منظم وو. قاضي القضاة صافي قلي خان د اُزبکو د جنگونو د تجربې په وجه د يو ډير ښهٔ جرنيل مهارت هم حاصل کړے وهٔ، خپل سړي ئ په ډير ترتيب سره ميدان جنگ ته ايستي وو. پښتنو هرڅومره په ډير زور سره په هغوي حملې وکړې مگر په هره حمله کښې پسپا شول. د نمرپريوتو قريب د هغوي د حملو زور سوړ شو او د ايران فوځ قريب وهٔ چې فتح حاصله کړې وے چې په دې کښې يوه عجيبه واقعه پيښه شوه. دا وخت د پښتنو نه تقريباً درې زره بهترين ځوانان ضائع شوے وو. د هغوي د غربينونو او د ټوپکو واله يوه دسته په يوه غونډۍ باندې ناسته وه. د ايران توپو دا قسم له دندوکار په هغوي باندې جوړ کړو چې غونډۍ پريښودو باندې هغوي مجبور شول. د ايران د فوځ يوې دستې فوراً په هغه غونډۍ باندې قبضه وکړه مگر د توپو او د ټوپکو د دارو په لوخړو کښې د ميدان جنگ په گردوغبار کښې د ايران توپچيانو د پښتنو د غونډۍ پريښودل او د ايرانيانو په هغې باندې قبضه کيدل ونهٔ ليدل. څهٔ وخت چې ئ هغه غونډۍ ته د خپلو گولو د اثر کتلو دپاره نظر وکړو نو وې ليدل چې د وړومبے نه هم ډير خلق د غونډۍ په سر سره د ټوپکو ولاړ دي. سمدستي ئ د ټولو توپو خلې د غونډۍ په طرف کړې او دا قسم گوله باري ئ په غونډۍ وکړه چې د ايراني فوځ دا يقين راغے چې مونږ سره هم خپلې توپخانې بې ايماني وکړه ځکه چې پښتنو سره خو توپې بالکل نهٔ وے. په دې وجه هغوي په ډيره ويره او پريشانی سره يو خوا ته بل خوا ته تښتيدل شروع کړل.

اسدالله چې يو ډير زيرک او باحوصله ځوان وهٔ او هغهٔ د فتح نه اميدونه نهٔ وو قطع کړي فوراً د ايرانيانو په دې غلطۍ پوهه شو او خپله پاتې شوې رساله ئ يو ځاے راجمع کړه او د تښتيدونکي ايراني فوځ په منځ باندې يو دا شان حمله وکړه چې ټول ايراني فوځ وارخطا شو او په يو ځل د ميدان جنگ نه وتښتيدل. صافي قلي خان سره د اتو زرو ايرانيانو قتل شو او ټول سامان جنگ د پښتنو په لاس راغے. دا مشهوره واقعه په کال 1719ء کښې شوې

ده. دې فتح د ابدالیانو پښني د هرات په صوبه کښې کلکې کړې او اسدالله د هرات نه قبلې ته ټول ایراني خراسان ماسوائ د مشهد نه فتح کړو. د دې نه پس هغهٔ د سبزوار علاقې ته راغے او د هغې د قبضه کولو نه پس ئ د فراه محاصره وکړه مگر د فراه په محاصره میرمحمود د اسدالله د روز افزون طاقت په وجه په هغهٔ حمله آور شو. اسدالله له ئ شکست ورکړو. اسدالله په جنګ کښې مړ شو. میر محمود چې هرکله فراه واخستو او ابدالي قبائلو له ئ شکست ورکړو نو د سیستان د ریګستانونو په لاره د کرمان په لوري روان شو. د ډیرو مشکلاتو نه پس هغه کرمان ته ورسیدو او ټول سیستان باندې ئ خپل تسلط قائم کړو. ابدالیانو چې په فراه کښې شکست وخوړو نو په هرات پریوتل او د پښتنو د بې اتفاقی په وجه د سیستان په علاقه باندې د قبضې کولو خبر هرکله چې لطف علي خان د ایران د سمت جنوبي فوځي حاکم ته ور ورسیدو نو هغهٔ فوراً د بندرعباس نه د کرمان په طرف روان شو.

لطف علي خان د شاه حسین د وزیر اعظم فتح علي خان ورور وهٔ او د لویې رتبې په وجه د ډیر لوي اثر خاوند وهٔ. علاوه د بهادرۍ نه د فنون جنګ نه هم ښهٔ واقف وهٔ. هغهٔ فوراً د میرمحمود د مقابلې دپاره یو باقاعده فوځ تیار کړو او په کرمان باندې ئ حمله وکړه. میرمحمود د کرمان د ښار نه د مقابلې دپاره راووتو مگر د هغهٔ فوځ د سیستان د ریګستانونو د تکلیفونو په وجه ډیر کمزورے شوے وهٔ. په دې وجه ئ شکست وخوړو. لطف علي په کرمان کښې یو څو ورځې پاتې شو او د هغې ښار د استحکاماتو نه پس سره د خپل فوځ شیراز ته په دې غرض باندې راروان شو چې د شیراز نه په هر ځاے کښې چې زما او زما د فوځ ضرورت وي د ایران د سلطنت د حفاظت دپاره به ښهٔ تیار یم.

میر محمود د سیستان په ریګستانونو کښې د حد نه زیات تکالیف برداشت کړل او ډیر فوځ ئ د لوږې او تندې نه ضائع شو. د هغهٔ په غیر حاضرۍ کښې ملک جعفر خان سیستاني او بیرم سلطان په قندهار باندې سره د یو څو زرو سپاهیانو حمله وکړه لیکن میر حسن د میر محمود کشر ورور هغوي له شکست ورکړو. میرمحمود د خپل وطن د واقعاتو دلاسه په واپس راتلو ډیر زر مجبور شو او اګرچې د هغهٔ فوځ د سختو او تکلیفونو په وجه بالکل تباه شوے وهٔ مگر چې څهٔ وخت هغه قندهار ته راورسیدو نو دې مشکلاتو د هغهٔ د ایران فتح کولو په مصممه اراده کښې څهٔ فرق رانهٔ وستو او هغه بیا د یو عظیم الشان فوځ په تیارۍ کښې مشغول شو. د غلجو قبیلې ته د ایرانیانو ظلمونه یاد وو او په دې تکلیفونو باندې د هغوي د بدل اخستو جذبه نهٔ سړیدله. په دې اثنا کښې د اصفهان معتبرین، وزیران، ملیان او عالمان د خپلو بدچلنو، بدکارو او بدعملو په وجه د یو بل سره اخته وو. هرکله چې د شاه حسین د دربار امیرانو او ملیانو د لطف علي د فتح او د هغهٔ د شیراز ته د راتلو خبر واوریدلو نو د فتح علي خان او د لطف علي خان په روز افزون طاقت باندې ئ حسد وکړو او چونکې د

بادشاه خپل څۀ لياقت او قابليت نۀ وۀ هغه د دې بدچلنو او بدمعاشو اميرانو او ملیانو په چلونو او هنرونو باندې نۀ پوهيدو. د اميرانو دا خيال وۀ چې هر کله فتح علي خان وزير اعلیٰ شو او لطف علي خان سپه سالار شو نو عنقريب دے چې زمونږ اثر به په دربار کښې ورک شي او ټول انتظامي او فوځي اختيارات به د دې دواړو ورونړو لاس ته لاړ شي. د دربار د دې اميرانو او ملیانو دا کار وۀ چې د خلقو نه به ئې شپه او ورځ رشوتونه خوړل، د خلقو نه به ئې په زور مالونه اخستل او زامن او ښځې به ئې ورله شرمولې، عهدې او منصبونه به عام طور باندې په رشوت خرڅيدل او د لياقت او قابليت هيڅ قدر نۀ وۀ، شپه او ورځ به عيش عشرتونه وو او د شرابو رنګ و راج به وۀ. انصاف د ملک نه ورک شوے وۀ چونکې هر افسر به د رشوت په ذريعه په خپل منصب مقرريدو د دې دپاره هغۀ به هم د رعيت نه د دولت جمع کولو په کوشش کښې شپه او ورځ مشغول وۀ. لارې د غلو، ډاکوانو او قزاقانو نه ډکې وے او هر طرف ته بدنظمي او بدامني وه. د دې بدچلنو اميرانو دا خيال وۀ چې کۀ چرې فتح علي خان او لطف علي خان دواړه کل اختياره شي نو په مونږ به د رشوت، عيش و عشرت او د حکومت دروازې بندې شي. پس د شاه حسين د دربار ملیانو او نورو اميرانو د فتح علي او لطف علي برخلاف شاه حسين ته چغلۍ وخوړې او د دروغو شکايتونو کولو سازش ئې وکړو. د دې سازش سرغنه ګان د بادشاه خپل امام او شاهي حکيم وو د دين دنيا دواړه ستنې بادشاه ته په نيمه شپه د هغۀ خلوت خانې ته لاړل او هغۀ ته ئې ووئيل چې فتح علي خان او لطف علي خان عنقريب تا د تخت نه کوزونکي دي او ستا ټوله بادشاهي، تاج و تخت بلکې ستا ژوندون په خطره کښې دے. او کۀ چرې فوري کارروائي تا د هغوي متعلق ونۀ کړه نو غالباً چې ستا ليدل به په دربار کښې زمونږ نصيب نشي. شپه په شپه بادشاه نورو اميرانو سره مشورې وکړې او چې څۀ وخت د بيوقوف او کمزورې بادشاه تسلي وشوه نو وزير اعظم ئې په هغه شپه پخپل کور کښې ګرفتار کړو او سترګې ئې ترينه وويستې پس د هغې نه فتح علي خان ئې په جيلخانه کښې واچولو. دوه کاله پس دا بدنصيبه په جيلخانه کښې مړ شو. د لطف علي خان د دومره فوځ په موجودګۍ کښې ګرفتارول څۀ اسان کار نۀ وۀ مګر هغۀ سره ئې چل ول او دوکه وکړه. د شيراز د قلعې د ګورنر او د دې بدچلنو اميرانو او وزيرانو مصلحت يو وۀ. هغۀ لطف علي خان له ډوډۍ وکړه او قلعې ته ئې مدعو کړو. لطف علي د هيڅ نه خبر نۀ وۀ د يو څو سړو سره بغير د څۀ بدګمانۍ د شيراز قلعې ته لاړو. د شيراز ګورنر هغه فوراً ګرفتار کړو او اصفهان ته ئې راوليږلو. د هغۀ فوځ د هغۀ په ګرفتاريدو باندې ټول منتشر شو او دغه شان خدائے تعالیٰ د يو ظالم قوم د بې انصافو بدل اخستو دپاره اسباب تيار کړل. دا واقعه په کال 1720ء کښې وشوه. فَاعۡتَبِرُوۡا يَا اُولِی الۡاَبۡصَار. اے د عقل خاوندانو د دې واقعاتو نه عبرت واخلئ.

میرمحمود پوره دوه کاله د خپل فوځ په تنظیم او تربیت کښې او د غلجو او ابدالیانو په رایو ځاے کولو کښې ولګول. شپه او ورځ ئ فوځونو ته قواعد او په میدان جنګ کښې د جنګیدو طریقې وښودلې او دا کوشش ئ هم وکړو چې بلوچ هغهٔ سره د ایران په تخریب کښې شامل شي. ټولو قومونو د هغهٔ په دعوت باندې لبیک ووئیلو او زرګونه خلق د هغهٔ د جنډې لاندې راجمع شول. د شکست په صورت کښې هغهٔ د خپلې صوبې قلعه ګانې د مدافعت دپاره مضبوطې کړې. په هر یو ښار کښې ئ میخزینونه واچول او د خلقو د خوراک دپاره ئ غلې او نور د خوراک سامان راجمع کړو. اخر په جنوري کال 1722ء کښې هغه د قندهار نه د اتویشت زره فوځ په سرکردګی کښې د ایران د فتح کولو په مهم باندې روان شو. هغهٔ ایران ته هم هغه لار واخسته چې په کومه هغه وړومبے تللے وهٔ او د سیستان ریګستانونه ئ په لږه موده کښې ووهل. اول هغه د بام قلعه واخسته او په ښهٔ شان سره ئ مضبوطه کړه. په هغې کښې ئ د جنګ ساز و سامان جمع کړو او د غلې انبارونه ئ پکښې واچول د دې ځاے کمان هغه نورالله خان نومے یو خپل ترهٔ ته چې ډیر بهادر او محنتي سړے وهٔ ورکړو. بیا هغهٔ په کرمان باندې حمله وکړه او دا ښار ئ واخستو لیکن د قلعې ایراني فوځ مقابله وکړه. دا قلعه لطف علي دوه کاله وړومبې د میر محمود د اول حملې نه پس ډیره مضبوطه کړې وه او دا وخت هغې کښې هم هغه فوځ پروت وهٔ چې چا وړومبے میرمحمود له شکست ورکړے وهٔ. هرڅومره چپاوۇنه چې هغهٔ په قلعه باندې وکړل د قلعې فوځ هغه پسپا هم نهٔ کړو مګر د څهٔ مودې د جدوجهد نه میرمحمود څهٔ مایوسه شان شو په واپس کیدو کښې هغهٔ ته د ډیرو نقصانونو ویره وه او خپل اصلي مقصد هم د لاسه غورځیدل وو. د فوځ زړهٔ به ئ هم په دې صورت کښې مات شوے وهٔ او د هغهٔ شهرت او نوم به هم بالکل ورک شوے وهٔ مګر په دې ځاے هم هغهٔ سره خداے امداد وکړو.

د کرمان ګورنر په اصلیت کښې یو کمزورے سړے وهٔ. د څهٔ مودې د محاصرې نه پس دا ګورنر بې حوصلې شو او چونکې هغه د شاه حسین د رشوت خورو امیرانو نه یو امیر وهٔ. د دې دپاره هغهٔ مناسب وګڼله چې د میرمحمود نه ځان په ځاے د تورې په روپو خلاص کړي. هغهٔ میرمحمود ته د شپږو زرو دوه نیم سوه پونډونو په دې شرط د ورکولو اقرار وکړو چې میرمحمود قلعه پخپل حال پریږدي او مخکښې لاړ شي. میرمحمود پخپله هم تنګ وهٔ او ټولو ته تیار وهٔ دا ئ یو غیبي امداد وګڼلو. د خپل فوځ افسرانو سره ئ په دې کښې مصلحت وکړو او اخر ئ د ګورنر دا شرط منظور کړو. پس د دې نه هغه د اصفهان په طرف باندې د یزد په لاره روان شو. یزد د اصفهان نه قریباً دوه سوه لس میله لرے دے او لاره ئ ټوله شګلنه او بې اوبو ده په ډیرو تکلیفونو یزد ته ورسیدو.

د یزد ښار ډیر محفوظ وهٔ او د هغې نه چارچاپیره یو لوے خندق وهٔ. قلعه بند فوځ د

میرمحمود د مقابلې کولو قصد وکړو او هر کله چې میرمحمود ولیدل چې د قلعې په اخستو به زما ډېره موده ولګي او د اصلي مقصد په حاصلولو کښې به ډېر ډیل وشي په دې وجه هغه د یو څو ناکامه حملو نه پس د یزد محاصره پرېښوده. د هغهٔ فوځ د سیستان د ریګستانونو د سفر او د ولوږو تندو نه ډېر کمزورے شوے وۀ او خیال ئ وکړو چې په ځاے د دې چې د ایران په معمولي معمولي ښارونو باندې خپل فوځ کمزورے کوم نو اصفهان چې د حکومت صدر مقام دے په هغې ولې نۀ ورځم. چنانچه هغه اصفهان ته د هغه کلو لار واخسته چې کومه کښې هغۀ ته د خوړلو څښلو سامان مهیا کیدے شو. او دغه شان هغه ګلن اباد ته چې د اصفهان نه لس میله دې خوا دے وررورسیدو. ګلن اباد ته د رسیدو نه وړومبے چې میرمحمود د اصفهان نه سل میله دیخوا وۀ نو هغه له د محمد قلي خان چې په دې وخت کښې د ایران وزیر اعظم وۀ یوه چیټي راغله، په دې کښې میرمحمود ته هغۀ لیکلي وو چې کۀ چرې تۀ نور وړاندې نۀ راځې نو تاله به مونږ اووۀ دیرش زره پونډه درکړو. د محمد قلي خان دا خیال وۀ چې میرمحمود صرف د لوټمار په غرض راغلے دے او شاید چې په رشوت واپس شي. مګر میرمحمود ته دا معلومه وه چې کۀ چرې اصفهان فتح شو نو بیا د ټول ایران سلطنت زما د ښنو لاندې دے او چې څرنګ ایران په پښتنو حکومت کړے دے دغه شان به پښتانۀ هم په ایرانیانو حکومت وکړي. په دې وجه هغۀ په ډېر حقارت سره د محمد قلي خان تجویز مسترد کړو او هغۀ له ئ جواب هم ور نۀ کړو. د میرمحمود اصلي مطلب د پښتون عزت ګټل وو د دې دپاره هغۀ د روپو اخستل بې عزتي وګڼله او ګلن اباد ته شواشو روان شو. دې ځاے کښې هغۀ د خپل کیمپ نه چارچاپیره خندقونه وکنستل او فوځ له ئ ښه دمه ورکړه. میرمحمود سره دا وخت درویشت زره فوځ پاتې شوے وۀ او نور ترینه د کرمان او د یزد د جنګونو او د سیستان ریګستانونو مړۀ کړي وو. باوجود د دې نقصاناتو د پښتنو په جوش کښې او د هغوي په زړورتیا کښې څۀ فرق نۀ وۀ راغلے او د ایران نه د بدل اخستو دپاره د خپلې وینې تویولو دپاره بالکل تیار وو. د ایران غونډې زوړ حکومت او وسیع سلطنت د مقابلې دپاره د پښتنو دا بې سروسامانه فوځ بالکل ناکافي وۀ. ولې شاه حسین او د هغۀ درباریان د خپلو بدچلنو په وجه د دې فوځ په راتلو ډېر ویریدل. د دربار رشوت خوارۀ او بدچلنه ملیان بغیر د فقې او د اصول په یو څو مسئلو باندې د بحث مباحثې کولو نه د حکومت په نظم و نسق باندې بالکل نۀ پوهیدل. د هغوي پخپل منځ کښې دومره حسد او بغض وۀ چې ټول وخت به هغوي شاه حسین ته د یو بل په سر شکایتونه کول. هغوي د خپل ملک په معاملاتو او د رعیت د بهبودی په خبرو باندې د غور کولو هډو وخت نۀ لرلو.

دا وخت په اصفهان کښې شپیتۀ زره وسله شوے فوځ او شپږ لکه ابادي موجود وه. د ښار نه چارچاپیره ښۀ مضبوط دیوال وۀ. علاوه د دې نه هغوي سره ډېره ښه توپخانه وه. د ښار

جنوب ته د زنده رود سیند بهیدو او بغیر د پل نه د پورې وتلو قابل نهٔ وهٔ. میرمحمود سره لویه توپه یوه هم نهٔ وه صرف یو سل ورې توپې وے کومې چې هغهٔ په اوښانو څان سره وړې وے. دا د هغهٔ توپخانه وه. په دې وجه د اصفهان فتح کول ظاهري طور باندې ناممکن وو مګر د میرمحمود فوځ د بهادرو سپاهیانو نه ډک وهٔ. او د ایران فوځ د خپلو وړومبنو شکستونو او د نامردانو افسرانو په وجه د ویرې نه لړزیدلو. په دې کښې شک نشته چې لطف علي خان غوندې بهادر جرنیل په اصفهان کښې موجود وهٔ مګر هغه او د هغهٔ ورور په جیلخانه کښې د ذلت ژوند تیرولو.

محمد قلي خان وزیر اعظم بادشاه ته مشوره ورکړه چې فوځ له د ښار د حفاظت دپاره بهر وتل پکار دي او د کیمپ نه چارچاپیره خندقونه کنستل پکار دي. مګر عبدالله خان چې د عربستان صوبه دار وهٔ هغه دا مشوره ورکړه چې په پښتنو باندې فوراً حمله کول پکار دي. ملیان هم په دې جرګه کښې شامل وو. د هغوي د ډلې مشر جرنیل فتح علي خان قاجار وهٔ دې شوده او توهم پرست سپاهي بادشاه ته په ډیره سنجیدګۍ سره دا خبره وکړه چې ماته د استراباد یوې بوډۍ ښځې چې په هغې باندې پیریان ناست دي دا خبره کړې ده چې کهٔ د پسهٔ دوه پښې سره د درې سوه پنځهٔ ویشتو مړو پلو ویشولے شي او په هغې باندې یوه پیغله نا وادهٔ کړے جینۍ دولس سوه ځله لَا اِلٰهَ اِلَّا الله ولولي نو هر چا چې هغه شوروا وڅښله نو هغه سړے به خلقو ته په نظر نهٔ راځي. ضعیف الاعتقاد بادشاه په دې بیهوده خبرې باندې عمل وکړو. او حکم ئې وکړو چې دا قسم شوروا دې زما فوځ له هره ورځ ورکولے شي. د دې قسم نور خرافات به په جماتونو او خانقاهونو کښې د ایراني فوځ د فتح دپاره شپه او ورځ کیدل. مګر هیچا هم د کامیابۍ اصلي سببونو ته توجه نهٔ کوله. هر چا به خپل څان بادشاه ته مخې مخې ته کولو او هغه به ئې په عجیبه عجیبه خبرو او په قسما قسم خوشامندو خوشحالولو. مګر د څان د ورکولو او په میدان جنګ کښې د قربانۍ کولو نه هر چا ګریز کولو. د حسد او بې اتفاقو په خپله کښې دا حال وهٔ چې یو جرنیل هم دا نهٔ غوښتل چې بل دې دومره کامیابي حاصله کړي چې د بادشاه په نظر کښې هغه زما نه درونډ شي.

غرض دا چې هر کله د پښتنو فوځ د یوې ازادۍ، د یو مقصد او د یو خیال وهٔ. د ایران فوځ کښې د بې اتفاقو، د خودغرضو، د کینو او د یو بل د پښو راښکو په وجه نوې نوې رخنې هره ورځ پیدا کیدلې. د پښتنو سالار اعظم هم یو سړے وهٔ چې د هغهٔ حکم به هغوي د فوځي نظام مطابق بغیر د چون و چرا نه منلو. هره ورځ به هغهٔ د قبائلو مشرانو سره مشوره کوله او هر کله چې به په یوه معامله فیصله شوه نو بیا به هر چا په هغه نظام باندې لفظ په لفظ عمل کولو. مګر د ایران په فوځ کښې به هر وخت د اعتماد الدوله او والئ عربستان په منځ کښې جګړې او رنجشونه وو. اعتماد الدوله به وئیل چې مونږ له د ښار مدافعت کول پکار دي او

فیصلـه کن جنګ کول نهٔ دي ښکار. پښتانهٔ به پخپله ستړي شي او اصفهان به پرېږدي. مګر والئ عـربستان عبدالله خان به وئیل چې مونږ له دشمن سره واړهٔ واړهٔ جنګونه چیړل ښکار دي چې هغوي تـنګ شي او لاړ شي. چنانچه پخپل حکم به بیا هره ورځ په یو ځاے او بل ځاے پښتنو سره جنګیدو. په دې ټولو وړو وړ معرکو کښې به پښتانهٔ په ایرانیانو زورزور کیدل او د هغوي زړونـه بـه نور غټیدل. اخر بادشاه یو لوے دربار راوغوښتو او په هغې کښې بادشاه په خپلـه صدر شو هـر یو خپله خپله رائ ورکړه. د ملیانو مشر د پسهٔ د پښو د یشولو او د هغې شوروا فوځ ته د ورکولو تجویز پیش کړو.

خـلاصه دا چې په اکثریت دا فیصله وشوه او بادشاه حکم وکړو چې په فوځ کښې دا قسم شـوروا دې تـقسیـم کـړې شـي. مـګـر د فوځ په ترتیب باندې اعتماد الدوله او د والئ عـربستـان پـه مـنځکښې اتفاق ونشو. په اووم مارچ 1722ء کښـې قـریباً پنځوس زره ایراني فوځ سره د څلیرشتو لویو توپو د پسهٔ د شوروا د څښلو نه پس په شل زره فوځ باندې دِ حملې کـولـو دپاره میدان ته راووتو. هغه ورځ خو په معمولي سوک څپیړه کښې تیره شوه. مګر په دویمه ورځ اتم مارچ باندې دواړه فوځونه مخامخ شول او هر یو طرف خپل لښکر له د جنګ تـرتیب ورکړو. د دواړو فوځونو په شکل و صورت کښې د زمکې او اسمان فرق وهٔ. ایرانیان پـه مـکـمـلـو وردو کښـې مـلـبـوس وو. شـکـلـونـه ئ سپین او په بدن غټ وو. پښتانهٔ نري او نـمـروهـلـي وو او چیـرړې ئ اغـوستـې وے. مګر د پښتنو د شکل نه د اتفاق او د یوې جذبې شـعـلـې وتـے. لیکن د اعتماد الدوله او د والئ عربستان په منځکښې لا جګړې نهٔ وے خورې شوې. نمرخاتهٔ وخت جنګ ونښتو خو د جنګ نښتو سره هم هرکله چې اعتماد الدوله خپل فـوځـونـه د مـخـکښـې کـیـدلـو نه منع کړل د دې دپاره چې پښتانهٔ اول حمله وکړي. نو والئ عـربستـان دا خیـال وکړو چې د دشمن په فوځ باندې فوراً حمله کول ښکار دي. سمدستي ئ سـره د خـپـل فـوځ د پښتـنـو پـه لښـکـر پـه میسره (د ګس لاس په دستې) باندې حمله وکړه. پښتانهٔ د ایرانیانو د تعداد په وجه فوراً پشا شول او اعتماد الدوله د میرمحمود د فوځ په میمنه (ښـي لاس) باندې ورپریوتو. په هغه طرف ئ هم پښتانهٔ پسپا کړل. دغه شان د میرمحمود په لښـکـر کښـې ډیـر اړے ګـړے پیـدا شـو. او د فـوځ یـوه لـویـه حصـه تښتیدو تـه تیـاره شوه. میـر مـحـمـود دا وخت په یوه وچته غونډۍ باندې ولاړ وهٔ او پخپل لاس ئ ټول فوځ جنګولو. هـرکـلـه چې هغهٔ د خپل فوځ دا بدحالت ولیدو نو هغه هم تیښتې ته تیار شو لیکن په دې منځ کښـې د والئ عـربستـان فـوځ پـه ځاے د دې چې پښتنو پسې چپاؤ کړے وے په لوټ کښې مشـغـول شـو. د میـرمـحـمـود قابل دماغ فوراً د ایرانیانو دا حرکت ولیدو او د هغې نه ئ فائده واخستـه. پـه دې خـطـرنـاک وخت کښې خپل فوځ په یو خاص نظام باندې را وروستو کړو. ایراني فوځ هغوي پسې راوړاندې شو. میرمحمود خپلې څرخي توپې (زمبورک) د اوښانو په

شا د فوځ نه په لږه فاصله ایښي وه. د توپ اوښان ئ په یو قطار کښې کښېنولي وو. څهٔ وخت چې ایرانیان د دې توپو په زد کښې راغلل نو د پښتنو توپچیانو په هسې جوش او چابک دستی سره په هغوي ګوله باري وکړه چې نهٔ صرف د ایرانیانو مخکښې راوړاندې کیدل بند شو بلکې په هغوي یوه ویره راغله. سمدستي میرمحمود پخپله سره د فوځه په ایراني فوځ په داسې زور حمله وکړه چې هغوي ئ ترڅهٔ منځه پورې پشا بوتلل. بیا ئ د پښتنو د فوځ یوه دسته د ایراني فوځ په شا راوچورلیده او د هغوي په لویو توپو باندې ئ د سترګو په رپ کښې قبضه وکړه. دا توپې فوراً پښتنو ډکې کړې او په دا شان سره ئ پرې ایرانیان وویشتل چې هغوي خوارهٔ وارهٔ شول. د میرمحمود په فوځ کښې د هغهٔ د میمنې کمانډر امان الله خان یو ډیر بهادر افسر وهٔ. هغهٔ د خپلې رسالې دستې سره د ایراني فوځ په شا باندې په داسې زور حمله وکړه چې ایراني فوځ بې حوصلې شو او هر یو سړے د ځان په خلاصي شو.

غرض دا چې د یو خونریز جنګ نه پس چې پښتنو په هغې کښې د خپلې بهادرئ، شجاعت، تدبر، حوصلې او تنظیم یو عدیم المثال ثبوت ورکړو. د ایران فوځ مکمل شکست وخوړو. او پنځویشت زره فوځ ئ میدان جنګ کښې قتل شو. د ایران باقیمانده فوځ چې د کومو کومو صوبو نه راغلے وهٔ هغې ته وتښتیدو. په دې جنګ کښې رستم خان چې د بادشاه د غلامانو مشر وهٔ او احمد خان چې د ټولې توپخانې مشر وهٔ هم قتل شول. د پښتنو په لاس د ایرانیانو بیحده زیات سامان جنګ راغے. د اصفهان فتح اوس میرمحمود ته ډیره اسانه ښکاریدله. مګر هغهٔ له پکار وو چې فوراً ئ د اصفهان په ښار باندې حمله کړے وے.

د یزد او کرمان نقصانونو د هغهٔ فوځ د اول نه کمزورے کړے وهٔ خو د اصفهان دې جنګ د هغهٔ فوځ ډیر سترے کړو. هغهٔ د فتح نه په دویمه ورځ د خپل کیمپ نه هډو ونهٔ خوځیدو او د شپې د ایران د ښار څهٔ فوځ د هغهٔ نه څهٔ توپې هم واپس واخستې. هغهٔ ته د دومره لویې فتح بالکل امید نهٔ وهٔ. مګر چې څهٔ وخت هغه حاصله شوه نو بیا هغهٔ له فوراً په هغې پسې څهٔ زیاتې کارروائي کول پکار وو. مګر هغهٔ د ډیرې خوشحالی نه په ځاے کښیناستو او نتیجه دا شوه چې څو ورځو کښې ایراني فوځ د شکست او د صدمو نه بیا ځان سنبال کړو. او د اصفهان چارچاپیره قلعه ګانې او دیوالونه ئ ډیر مضبوط کړل. د یو څو ورځو نه پس هغهٔ ته معلومه شوه چې اصفهان نهٔ صرف دمه شوے دے بلکې هغه د بل خونریز جنګ دپاره بیا تیاري کوي. میرمحمود په دې فکرونو کښې دومره پریشان شو چې کله کله به ئ کرمان ته د واپس تللو خیال هم په زړهٔ کښې راغے. لیکن پخوا د دې نه چې هغه میدان ایرانیانو ته پریږدي هغهٔ مخبران د اصفهان ښار ته د دې دپاره ولیږل چې د ایران د فوځ شکست په شاه حسین او د هغهٔ په درباریانو څهٔ قسم اثر کړے دے؟ میرمحمود ته مخبرانو دا

خبر راوړو چې شاه حسین او د هغهٔ درباریان اګرچې د اصفهان د ښار د حفاظت دپاره تیاري کوي مګر د اصفهان بادشاه او ابادي پخپله تر دې پورې د پښتنو نه ویریږي چې هر یو د ځان او مال تیښتې ته تیار دے. په دې خبره د هغهٔ زړهٔ لږ جوړ شو خپل فوځ له ئ بیا سردوباره ډاډ ورکړو او د اول نه ئ په دوچند جوش باندې د اصفهان د محاصرې تیاری شروع کړې.

دلته په اصفهان کښې بادشاه چې د شکست خبر واؤریدو نو د هغهٔ د ویرې او سراسیمه ګی څهٔ حد نهٔ وهٔ فوراً ئ یو جنګي دربار وکړو په هغې کښې اعتماد الدوله بادشاه ته دا تجویز پیش کړو چې تهٔ د اصفهان نه فوراً قزوین ته لاړ شه. او د هغه ځاے نه د خپل رعایا په نوم باندې یو فرمان راولیږه چې هغوي دې د ایران د عزت او ناموس ساتلو دپاره په متفقه طور باندې د پښتنو مقابلې ته ووځي. ولې والئ عربستان د دې ډیر سخت مخالفت وکړو او د فوري مقابلې کولو مشوره ئ بادشاه له ورکړه د ډیر غور او فکر نه پس بادشاه والئ عربستان سره متفق شو. هغه ئ د اصفهان ګورنر مقرر کړو. د نوي فوځونو د برتی حکم وشو او د لارستان ګورنر علي مردان خان ئ سپه سالار اعظم مقرر کړو. او خونصیر نومے یو ځاے چې د اصفهان نه پنځلس میله په قطب قبله پروت وهٔ د فوځ د کیمپ دپاره ئ خوښ کړو.

دې خوا امیر محمد د اصفهان د خواوشا کلو کښې لوټ مار شروع کړو چې اصفهان ته دننه خرڅ خوراک لاړ نهٔ شي. چونکې میرمحمود یو جرنیل وهٔ او په سیاسي معاملاتو کښې د هغهٔ دومره تجربه نهٔ وه او علاوه د دې نه پښتنو ته اوس د ایران نه د هغوي د ظلمونو د بدل اخستو موقع په لاس ورغلې وه د دې دپاره د غلجو د ابدالیانو او نورو پښتنو د دې فوځ نه په چارچاپیره کښې څهٔ داسې بې اعتدالي وشوې چې د پښتنو فوځ له په هغې باندې افسوس کول پکار دي. په دې کښې څهٔ شک نشته چې د ایران بدچلنه بادشاه او د هغهٔ د دربار رشوت خورو امیرانو تر ډیرې مودې پورې د پښتنو په ښځو او نرو، زلمو او وړو په ګناهګارو او بې ګناه خلقو باندې قسم قسم ظلمونه کړي وو. او هر طرف ته ئ د هغوي ښکلي ښکلي ملکونه وران ویجاړ کړي وو. مګر سره د دې پښتنو له د هغې بدل د ایران د عامو خلقو نه نهٔ وو اخستل پکار. ولې هغوي هم د ایرانیانو پشان د اصفهان په مضافاتو کښې په ډیره بې دردی سره عام د اولس خلق قتل کړل. او د هغوي ملک ئ وران ویجاړ کړو. هغهٔ د ټولو نه وړومبے فرح اباد چې د اصفهان نه درې میله لرې وهٔ او په هغې کښې شاهي محل واقع وهٔ په هغې باندې حمله وکړه. او بغیر د مقابلې نه ئ فتح کړو. بیا هغهٔ په جلفه نومے یو کلي باندې چې د اصفهان نه یو نیم میل په سهیل د زنده رود په غاړه باندې پروت وهٔ حمله وکړه. د دې ځاے په قلعه کښې د ارمنیانو فوځ وهٔ دوئ د پښتنو د ظلمونو قصې د چارچاپیره وطن نه اوریدلے وے د دې کبله هغوي مقابلې ته تیار شو ولې په دویمه ورځ میرمحمود د هغوي د ښار دیوال مات کړو او هغه ځاے ئ هم واخستو. په جلفه کښې پښتنو هم هغه شان ناجائ

ظلمونه وکړل لکه څنګه چې هغوي په نورو ځایونو کښې کړي وو. د دې ظلمونو خبر چې څهٔ وخت د اصفهان وسیدونکو ته ورسیدو نو د هغوي په زړونو کښې یو دهشت او خوف پیدا شو. هم د دې ویرې په وجه هغوي د مقابلې دپاره د زړهٔ د اخلاصه جدوجهد شروع کړو. کهٔ چرې میرمحمود د دې نه زیاتې سختي او ظلم نهٔ وے کړے چې کوم د فوځي ضروریاتو دپاره لازمي وهٔ نو د اصفهان خلق پخپله د شاه حسین او د هغهٔ د بدچلنه درباریانو نه دومره تنګ وو چې هغوي به د میرمحمود مقابله په دومره جوش او جذبې سره نهٔ وے کړے. مګر افسوس دے میرمحمود خپله فتح په دې ناجائزو سختو باندې بدنامه کړه.

سلطان شاه حسین چې د میرمحمود د پرله پسې فتوحاتو نه خبر شو نو یو ځل بیا هغهٔ میرمحمود ته د روپو طمع ورکړه مګر اوس میرمحمود د اصفهان د اخستلو قصد کړے وهٔ. او روپې د هغهٔ په دې مصممه اراده کښې نهٔ شوې حائل کیدے. چنانچه د جلفې د اخستو نه پس هغهٔ په یویشتم د مارچ کال 1722ء کښې په اصفهان باندې حمله وکړه. مګر د هغهٔ فوځ پشا شو. د جلفې ښار اصفهان سره د زنده رود په پلونو باندې یو ځاے شوے دے. میرمحمود په اوله حمله کښې په دې پلونو د ټولو نه په لوے پل قبضه کول غوښتل او د هغې پل تر نیمې پورې رسیدلے وهٔ مګر د هغې پل د حفاظت کونکو قلعه ګانو نه په دهٔ د توپو د ګولو باران وشو او د هغهٔ سرې وارخطا راواپس شول. ایرانیان په هغوي پسې راووتل او عین د خپل کیمپ د خندقونو پورې ئې راورسول. تر دې وخته پورې میرمحمود د یوې قلعې په محاصره کښې هم نهٔ وهٔ کامیاب شوے. او بیا هغهٔ ته د کرمان او د یزد نقصانونه رایاد شول. پس هغهٔ شاه حسین ته په لاندې شرطونو باندې د صلح پیغام ورولیږلو :

١. د ایران بادشاه دې ما د قندهار د خراسان او د کرمان خودمختار بادشاه تسلیم کړي.

٢. بادشاه دې ما سره د یو لور په ودولو رشته داري وکړي او هغې له دې یو لک پنځویشت زره پونډه په جهیز کښې ورکړي.

بادشاه د میرمحمود په ګزشته پسپا کیدو باندې زړور شوے وهٔ په دې وجه ئې دا شرطونه مسترد کړل. میرمحمود اوس د اصفهان په خلقو کښې د قات پیدا کولو کوشش شروع کړو. چارچاپیره علاقه ئې تر میلونو پورې تباه او برباد کړه او قلعه بند فوځ او خلقو ته ئې یوه دانه هم د خوراک دپاره نهٔ پریښوده د اصفهان په خلقو کښې ورځ په ورځ بې ارامي زیاتیده میرمحمود د خپل فوځ دپاره د چارچاپیره علاقې نه غلې او مالونه راجمع کړي وو. یو ځاے دوي لوے لوے کاروانونه د غلې چې اصفهان ته په پټه راروان وو لوټ کړل. او دویم ځل ئې د عباس اباد په پل باندې چې کوم جارجي فوځ مقرر شوے وهٔ هغه ئې ټول قتل کړل.

په دې جنګ کښې د پښتنو او ایرانیانو دواړو د طرف نه دا شان کارونه وشول. چې د تهذیب په جامه باندې تور داغونه ښکاره کیدل. یو ورځې امان الله خان د خرڅ خوراک

اوښانو سره د بن اصفهان په خوا کښې راتيريدو . بن اصفهان د اصفهان د ښار نه په درې ميله فاصله باندې د يوې غونډۍ دپاسه يو محفوظ کلے وۀ. د ګلن اباد د جنګ نه پس ډير ايراني سپاهيان په دې کلي کښې راجمع شوي وو او وخت په وخت به ئ د پښتنو په فوځ باندې چپاوۀنه کول. په دغه ورځ باندې چونکې د امان الله خان سپاهيانو سره ډير زيات د خوراک سامان وۀ او د ميرمحمود د کيمپ نه په ډيره فاصله راروان وو د بن اصفهان دې سپاهيانو په هغه اوښانو باندې حمله وکړه او اګرچې ميرمحمود پخپله د هغوي امداد له راورسيدو مګر بيا هم ايرانيانو د امان الله خان ډير سپاهيان قيديان کړل او ټول مال ئ ترينه لوټ کړو. او ميرمحمود او د هغۀ فوځ ته ئ ډير نقصان ورسولو. په قيديانو کښې د ايرانيانو لاس ته د ميرمحمود يو ترۀ يو ميرنے ورور او دوه د ترۀ زامن راغلل. ميرمحمود سره د هغوي د سلامتۍ ډير فکر شو. او شاه حسين ته ئ فوراً د هغوي د ژوندي ساتلو دپاره قاصد وليږلو. مګر پخوا د دې نه چې بادشاه څۀ ذخل ورکړے وے د بن اصفهان ايراني فوځ ټول قيديان قتل کړل. ميرمحمود د دې په بدل کښې هغه ټول ايراني قيديان چې د هغۀ په کيمپ کښې وو مړۀ کړل او حکم ئ وکړو چې پس د دې نه دې ايراني قيديان ژوندي نشي پريښودې په دې وجه د دواړو فوځونو په منځ کښې د فوځي کارروايو نه علاوه ذاتي بغضونه او دشمنۍ پيدا شوې. او ميرمحمود د اصفهان د تباه کولو قصد وکړو. د اصفهان نه چارچاپيره هغۀ داسې پهرې ولګولې چې يو مچ هم د ښار نه بهر وتے نشو. او نۀ دننه کيدے شو. دننه په ښار کښې د شاه حسين نه چار چاپيره هم هغه شان د دربار بدچلنه او نمک حرام اميران او ملېان ناست وو. د دۀ په اميرانو کښې د ټولو نه زيات بااختياره عبدالله خان والئ عربستان وۀ چې د چا په وجه شاه حسين د ګلن اباد جنګ بائيللے وۀ. کوم سرې چې د محاصرې په دوران کښې ډير ښۀ فوځي خدمات کړې وو هغه احمد علي نومے يو خواجه سرا وۀ. عبدالله خان د هغۀ د شهرت، نوم او هردلعزيزۍ نه دومره ويريدو چې فوراً ئ بادشاه ته د هغۀ په سر چغلي وخوړه او په سبا دا سړے په کټ کښې مړ بياموندې شو. صرف يو لطف علي خان وۀ چې چا ميرمحمود له په کرمان باندې شکست ورکړے وۀ. هغۀ په ټول اصفهان کښې د سپه سالارۍ قابليت لرلو. بادشاه شاه حسين هغۀ ته اوس دا عهده پيش کړه، هغۀ انکار وکړو. کوم خلق چې د هغۀ د ورور د قيد او د ستر ګو ويستو او د هغۀ د خپل ځان د ذليله کولو ذمه دار وو هغوي هم هغه شان د بادشاه منظور نظر وو.

د شاه حسين په زامنو کښې صرف يو زوے شهزاده طهماسپ ډيره موده شوې وه چې د ښار په فصيل باندې د ميرمحمود د فوځ نه په پټه وتے وۀ، سره د هغۀ د ډيرو کوششونو په ايران کښې هغۀ دومره فوځ پيدا نۀ کړې شو چې د اصفهان امداد ته راغلے وے. اوس شاه حسين د سختۍ مايوسۍ په حالت کښې ميرمحمود ته قاصد وليږلو چې ماته ستا هغه وړومبي

شرطونه منظور دي. ولې دا تجويز اوس ميرمحمود مسترد کړو. په دې کښې خبر راورسيدو چې ملک محمود د ايران سيستاني ګورنر سره د لس زره فوځه د اصفهان امداد له د ګلن اباد خواو شا ته راورسيدو. د اصفهان د خلقو مړاوي زړونه د دې خبر په اوريدو يو ځل بيا تازه شول. ولې ميرمحمود هغهٔ له د خراسان د حکومت وړکولو طمع ورکړه او هغه د مشهد په لوري روان شو. اوس د اصفهان ټول اميدونه قطع شول. په اصفهان کښې د هرقسم خوراک ختم شو. د باربرداری اوښان خرهٔ او قچر لويو لويو اميرانو په ډيرو ډيرو قيمتونو باندې د خوراک دپاره په بيعه واخستل چې دا خوراک هم ختم شو نو سپي، پيشوګان او مږې خلقو پخې کړې او وهٔ ئ خوړلې. د شپې به د يوې کوڅې خلق د بلې کوڅې په خلقو باندې د دې دپاره حمله آور شول چې په هغې کښې غله پټه ده. او ډير سړي په دې شان هره شپه قتل کيدل. پس له هغې نه به خلقو د ونو پوستکي يشول او څښل به ئ. خلقو زړې پڼې او د څرمنو مشکونه په تيلو کښې تلوّل او د خوراک دپاره به ئ استعمالول.

غرض دا چې د اصفهان د اميرانو او غريبانو دا حالت شو چې د هغې د بيانولو دپاره په هيڅ ژبه کښې کافي الفاظ نشته. د ښار نه به چې چا د بهر وتلو کوشش کولو نو هغه به د ميرمحمود سړو په ډيره بې رحمۍ سره قتلولو. اوس د محاصرې قريباً اتهٔ مياشتې شوې وې او د ښار ابادي د زرګونو په تعداد کښې د لوږو تندو نه مړه شوې وه. د زنده رود نه چې کوم نهرونه د ښار دننه تلل هغه هم پرې ميرمحمود بند کړي وو. اوس دا وخت د ايران خودغرضو حاسدانو بې اتفاقه او بدچلنه اميرانو په منځ کښې د جګړو او يو مشترک دشمن ته د اتفاق نهٔ کولو او د يو بل د پښو راښکلو او په خپلو فائدو باندې د قوم د ښيګړو قربانولو نتيجې د هغوي د سترګو په وړاندې داسې مخامخ شوې چې نهٔ ترې تښتيدې شو او نهٔ ورته ودريدې شو. قانون فطرت، ظلم، بې اتفاقو، خودغرضو او خانه جنګو سره ټول عمر هم دا سلوک کړې دې. په دې کښې هغهٔ نهٔ پښتون نهٔ د ايران نهٔ د عرب نهٔ د عجم نهٔ د ترک نهٔ د تاتار نهٔ د چين او نهٔ د جاپان تميز کړې دې. هرچا له هغهٔ د اعمالو د درستکۍ موقع ورکوي. مګر چې څوک د هغې نه فائده وانخلي نو هغه ورسره هم دغه شان سلوک کوي.

هرکله چې شاه حسين او د هغهٔ بدچلنه وزراء په دې پوهه شول چې اوس زمونږ د مرګ نه بغير بل په هيڅ وجه خلاصې نشته نو په دويشتم اکتوبر 1722ء باندې شاه حسين د ميرمحمود دربار ته يو قاصد وليږلو. چې زما د طرف نه ميرمحمود ته ووايه چې زهٔ د ايران بادشاهي تاته پريږدم. په دويمه ورځ باندې بادشاه د اصفهان د خلقو نه په ډير درد انګيز طريقه باندې رخصت واخستو. او بيا د عبدالله خان او د نورو اراکينو د سلطنت سره په هغه اسونو باندې سوارهٔ شول چې کوم ميرمحمود هغهٔ له راليږلي وو او بادشاهي تاج د ميرمحمود په سر باندې د ګښيښودلو دپاره د هغهٔ کيمپ ته روان شول. هرکله چې شاه حسين د

میرمحمود د قیام ګاه نه په څهٔ فاصله راورسیدو نو د هغهٔ د غلجو فوځ په دې بهانه باندې چې میرمحمود لا اودهٔ دے ډیر ساعت پورې ایسار کړو. د نیمې ګینټې د انتظار نه پس شاه حسین ته د مخکښې تللو اجازت وشو. او د فرح اباد په محل کښې هغه میرمحمود سره په دیوان خانه کښې مخامخ شو.

میرمحمود په یو زرین بالښت باندې ډډه لګولې وه او ناست وهٔ هرکله چې شاه حسین د دربار نیمې ته وروړسیدو نو میرمحمود ته ئ سلام وکړو، میرمحمود پاڅیدو او خپل ځان سره ئ یو ځاے کښینولو د یو څو خوشامدانه الفاظو نه پس شاه حسین پخپل لاس د ټول ایران د حکومت کنجیانې میرمحمود ته ورکړې او شاهي تاج ئ د هغهٔ په سر باندې کښیښودو پس د دعا او بادشاه سلامت د اوازونو نه شاه حسین د میرمحمود په خوا کښې کښیناستو. بیا قهوه تقسیم شوه او میرمحمود اول ځل شاه حسین سره ګفتګو شروع کړه. شاه حسین ته مخاطب شو او وې وئیل د دنیا شان و شوکت او جاه و جلال هم دغه شان بې وفا دے د خداے تعالي چې چاته خوښه وي بادشاهي ورکړي او د یو قوم نه ئ اخلي او بل ته ئ ورکوي. زهٔ تاسو له تسلي درکوم چې زهٔ به تا د خپل پلار په ځاے ګنم او بغیر ستا د مصلحت نه به هیڅ کار نهٔ کوم په دې الفاظو دربار ختم شو. او د صفوي خاندان په دې ځاے خاتمه وشوه او د غلجو بادشاه اوس د ټول ایران بادشاه تسلیم شو. هم په دغه ورځ میرمحمود د اصفهان د ټولو اسلحه خانو د محلونو او خزانو باقاعده قبضه واخسته. او په پنځمه ورځ هغه د یو لوے جلوس سره په خپله اصفهان ته ننوتلو. د ټولو نه اول د تخت نه د پریوتي بادشاه شاه حسین دپاره ئ یو ښهٔ مناسب محل خوښ کړو. او یو ښهٔ لوے پنشن ئ هغهٔ له مقرر کړو. د دې نه پس چونکې د اصفهان خلق د محاصرې د تکلیفونو او مصیبتونو نه ستړي ستومانه وو هغوي له میرمحمود د خوراک رسولو انتظام وکړو او په خلقو کښې د امن او د سکون د پیدا کولو کوشش ئ وکړو. چونکې پښتانهٔ د انتظام د چلولو، د دفترونو د کار نه بالکل ناواقفه وو ددې دپاره په هره یوه محکمه کښې ئ دوه افسران یو ایرانے او یو پښتون مقرر کړو او ایراني افسر ته ئ دا حکم وکړو چې پښتنو ته د دفترونو او د انتظامي کارونو چلول وښیي. دویم کار د میرمحمود دا وهٔ چې پخپل فوځ کښې ئ سخت احکام جاري کړل چې د رعیت یو کس ته دې هم هیڅ قسم نقصان او تکلیف نهٔ ورکوي. په دې احکامو هغهٔ په دا شان سختی سره نفاذ وکړو چې یو سپاهي ته هم د ایرانیانو د تنګولو یا هغوي سره د ناجائز سلوک کولو جرأت پاتې نشو د هغهٔ د انصاف او عدالت دا حال وهٔ چې په ایراني او پښتون کښې ئ د هیڅ قسم تمیز نهٔ کولو. کوم ایراني سردارانو چې د خپل بادشاه نه هغهٔ ته په پټه امداد ورکړے وهٔ هغوي له هغهٔ سختې سزاګانې ورکړې او څوک چې شاه حسین سره تر اخره پورې وفادار پاتې شوي وو هغوي له ئ ډیر لوے لوے انعامونه ورکړل.

غرض دا چې په ملک کښې د امن و امان پيدا کولو او د خلقو د بهبودۍ او د هغوي د اسوده کولو دپاره هغهٔ او د هغهٔ سرداران شپه او ورځ لګيا شول. په لږه موده کښې د شاه حسين د زمانې هغه ټوله بدنظمي رشوت ستاني، بدچلني، شوکې ډاکې او غلاګانې د ملک نه ورکې شوې. او ميرمحمود ډير زر په ايراني رعايا کښې يو ښهٔ نوم او شهرت حاصل کړو. مګر افسوس چې د هغهٔ دا ښهٔ خوئ او نيک خصلت او رعايا سره رحمدلي او په ملک کښې د امن و امان شوق صرف د يو څو مياشتو دپاره وهٔ. د هغهٔ په مزاج کښې د تبديلۍ وجه څهٔ خو د ايرانيانو خپل قصور وهٔ چې د هغهٔ برخلاف هغوي سازشونه او بغاوتونه پيدا کول او چونکې ميرمحمود په هيڅ شان سره د ايران د حکومت د پريښودو دپاره تيار نهٔ وهٔ. د دې دپاره هغهٔ ټول د مشکوک چال چلن خلق په بې رحمۍ سره قتل کړل. د هغهٔ په طبيعت کښې يو پراسرار قسم سختي راپيدا شوه او د هغهٔ د دې سخت طبيعتۍ نه نهٔ پښتون خلاص وهٔ او نهٔ ايرانے. څهٔ لږه موده پس هغه سودائي مزاج غوندې شو، او هر وخت به هغهٔ سره د خپل ژوند ويره وه هر چا ته به ئې د شک په نظر کتل. او د معمولي معمولي شکايتونو او شکونو په راتلو به ئې خلق ګرفتارول. کومه هردلعزيزي او شهرت چې هغهٔ د خپل سلطنت په شروع کښې پيدا کړے وهٔ هغه ورو ورو هغهٔ ضائع کړو. د هغهٔ نه چارچاپيره د پښتنو سردارانو او ايراني اميرانو په زړونو کښې يو هيبت پيدا شو کومه مينه محبت د ازادۍ او د برابرۍ سلوک چې هغهٔ وړومبے پښتنو سره کولو او د هغې په وجه به هغوي په هغهٔ راټول وو او د هغهٔ دپاره به ئې سر ورکولو ورو ورو د هغهٔ نه لاړل. خپلو عزيزانو او تربورانو سره به د هغهٔ سلوک درجه په درجه سختيدلو. تر دې پورې چې د ملګرتيا هغه رشته چې د کومې په وجه ټول پښتانهٔ د يو بل سره ګنډلي وو بالکل ورکه شوه. د هغوي هغه وړومبے محبت د بادشاه سره پاتې شوے نهٔ وهٔ. او نهٔ هغهٔ د هغوي د زړهٔ ساتلو کوشش کولو. د مفادو اشتراک د کوم په وجه چې هغوي تراوسه پورې يو ځاے وو هغه هم اوس په هغوي کښې پاتې شوے نهٔ وهٔ. مګر سره د دې ټولو عيبونو د هغهٔ دا کوشش وهٔ چې په ملک کښې امن و امان قائم کړي. د رعايا په زړهٔ کښې د خپل حکومت اعتماد پيدا کړي. مګر د دې مطلب حاصلولو دپاره هغهٔ دومره سختي هر چا سره شروع کړه چې په ملک کښې د بدامنۍ پيدا کولو په بهانه باندې هغهٔ لوے لوے پښتانهٔ د خپلو عهدو نه برطرف کړل. چنانچه هم دغه شان امان الله خان او مير اشرف د ميرمحمود تربوران وو او د ګلن اباد په جنګ کښې او د اصفهان په محاصره کښې هغوي ډير قابل قدر خدمات کړي وو، ميرمحمود په هغوي باندې قسماقسم الزامونه ولګول. او هغوي قندهار ته د ويرې نه وتښتيدل. هم په دغه زمانه کښې طهماسپ مرزا د شاه حسين زوي د اصفهان د فتح کيدو نه پس خپل ځان په قزوين کښې بادشاه کړو ميرمحمود فوراً د هغهٔ برخلاف يو فوځ واستولو. شهزاده طهماسپ د دې په اوريدو سره اذربائيجان ته وتښتيدو د پښتنو لښکر

چې څهٔ وخت قزوین ته ورسیدو نو د ښار خلقو د ښار دروازې پرانستلې او هغوي په ښار باندې قبضه وکړه. پښتانهٔ هم په خوشحالۍ ښار ته ننوتل او د ایران خلقو سره ئ ډیر ښهٔ تعلقات پیدا کړل مګر د یو څو ورځو نه پس د قزوین ټولو خلقو سازش وکړو او په پښتنو بالکل بې خبره راپریوتل.

د پښتنو د نیم لښکر نه ئ سرونه پرې کړل باقي نیم ئ د ښار نه بهر وویستل. میرمحمود په دې باندې د حد نه زیات په قهر شو او د امان الله خان او میر اشرف په تښتیدو ئ قهر نور هم زیات شو. د هغهٔ دا یقین راغے چې زما سلطنت او زما ژوند د ایرانیانو د لاسه په خطره کښې دے چنانچه یوه شپه ئ د اصفهان یو سل پنځوس معتبرین قتل کړل. په دې باندې چې څهٔ وخت په ښار کښې زیاتي شورش وشو نو نور ئ هم ډیر خلق قتل کړل. د قتل مقاتلې په دې دوران کښې ډیر کورونه لوټ او تباه شول. په دې اثنا کښې شهزاده طهماسپ د اذربائجان نه د پیاده فوځ کشی تیارے وکړو او روسیانو او ترکو د ایران د بدنظمی او د اړې ګړې نه فائده واخسته او د ایران څو صوبې ئ پخپلو خپلو سلطنتونو کښې شاملې کړې. د پښتنو فوځونه اوس ډیر کم شوي وو مګر د هغوي نوم دومره لوے شوے وهٔ چې د هغوي د رسیدو سره به د حکومت دشمنان خوارهٔ وارهٔ شول.

د میراشرف او امان الله خان په تلو سره د پښتنو د لښکر ډیره حصه قندهار ته تلې وه د دې ټولو مصیبتونو په وجه د میرمحمود طبیعت نور هم د ظلم طرف ته مائل شو. او چونکې د خپل وطن نه ډیر لرې پروت وهٔ د دې دپاره هغهٔ په خپل فوځ کښې ډیر کرد برتي کړل. او په کال 1724ء کښې یو لوے فوځ مرتب کړو. د دې فوځ په امداد سره هغهٔ د ترکو نه د عراق ډیره حصه واپس واخستله. او د فارس ډیرې ضلعې ئ هم فتح کړې. مګر د علاقو انتظام سره د دې فتوحاتو قائم نشو.

میراشرف او امان الله خان ته هغهٔ د صلاحیت سوال جواب واستول او ورته ئ منت وکړو چې د پښتنو یو نوے تازه دم فوځ زما امداد ته راولئ. میراشرف او امان الله خان واپس د هغهٔ په وینا اصفهان ته راغلل. مګر هغوي سره د میرمحمود د سابقه سختۍ په وجه ډیر لږ پښتانهٔ په طور د کومک راغلل. میر اشرف چې د میر عبدالله زوے وهٔ او د میرمحمود د ترهٔ زوے وهٔ د پښتنو په لښکر کښې ډیر زیات هردلعزیز وهٔ. هغهٔ د خپل پلار مرګ صرف د قامولی په وجه هیر کړے وهٔ او میرمحمود سره په هر مشکل مهم کښې شامل وهٔ. د پښتنو د لښکر په اصرار باندې میر اشرف د سالارۍ په عهده باندې میرمحمود مستقل کړو. میرمحمود د دې فوځ په رارسیدو سره په یزد باندې حمله وکړه مګر ناکام شو او اصفهان ته واپس راغے. د فوځ په ناکامی او چارچاپیره د ملک بې چینۍ د هغهٔ په دماغ دومره خراب اثر وکړو چې هغه نیم لیونے شو. د هغهٔ د مزاج په استقلال کښې ډیر فرق راغے. هرڅومره

ورځې چې به تیریدلې د هغهٔ بدګماني به په پښتنو او ایرانیانو دواړو باندې زیاتیدله او کله کله به ئ داسې ناجائز احکام فوځ ته ورکړل چې د هغې تعمیل کول به ناممکن وو. په دې باندې به د هغهٔ طبیعت کښې نور هم غیظ و غضب پیدا شو او د لښکر افسرانو سره به ئ سخته بدسلوکي شروع کړه. هیچا ته به د هغهٔ د قهر په وخت کښې د مخامخ کیدو جرأت نهٔ کیدو او هر یو به د هغهٔ نه ځان لرې ساتلو. په دې خبرو باندې د هغهٔ د دماغو جنون ورځ په ورځ په ترقي وۀ. تر دې پورې چې یو ځل ئ ځان په تهه خانه کښې بند کړو او پرله پسې دوه میاشتې ئ روژې وساتلې او چیله ئ وویسته. دې چیلې د هغهٔ په صحت باندې نور هم ډیر سخت اثر وکړو او د تهه خانې نه په داسې بد حالت کښې راووتلو چې رنګ ئ تک تور شوے وۀ او دومره مانده شوے وۀ چې د پیژندګلو د کور نه وتلے وۀ. هغه میرمحمود چې د هغهٔ فوځي قابلیت د سلطنت په ابتدا کښې په پښتنو کښې بې نظیر وۀ د هغهٔ انصاف عدیم المثال وۀ او د هغهٔ فیاضي او هردلعزیزي د ایران د خلقو دپاره باعث حسد وه، اوس هغه سخت خونخوار، بدګمانه، ظالم او سودائي شو.

په اوومه فروری کال 1725ء کښې هغهٔ ته چا خبر ورکړو چې د شاه حسین یو زوي د اصفهان نه د تښتیدو کوشش کړے دے. سمدستي ئ د شاه حسین ټول زامن راوبلل او ماسوائ د وړو وړو معصومانو چې د هغوي عمرونه د پنځو کالو نه کم وو ټول په خپل لاس قتل کړل. شاه حسین په دۀ د میرمحمود د لاس نه د خپلو زامنو د بچ کولو دپاره راغے. دغه وخت میرمحمود بالکل لیونے وۀ او شاه حسین ئ هم په بیهوشي کښې په چاړۀ ووهلو. مګر د شاه حسین وینه چې ئ ولیده نو څۀ هوش پکښې راغے او پخپلو کارونو باندې سخت پښیمانه شو. حقیقت دا دے چې د میرمحمود په دماغ څۀ چل شوے وۀ او هغه بالکل د حکومت کولو قابل نۀ وۀ پاتې شوے. ډیره موده پس هغه فالج ووهلو او په کلمو کښې ئ ډیره سخته بیماري پیدا شوه. د دې تکلیفونو په وجه به هغه کله کله د ځان نه غوښې او بوټي وشوکولې او وۀ به ئ خوړلې.

اخر کار بعضې خلق وائي چې هغه خپلې مور د دې تکلیفونو نه د خلاصولو دپاره په خپل محل کښې په 1725ء کښې مړ کړو. او بعضې خلق وائي چې پخپل مرګ مړ شو. د هغهٔ په مرګ سمدستي پښتنو جرګه راټوله کړه او ټولو پښتنو میراشرف د میرمحمود په ځاے بادشاه منتخب کړو. دا ځوانمرد غلجے په بهادري، په شجاعت او انصاف کښې هم دغه شان وۀ لکه چې میرمحمود پخپله ابتدائي سلطنت کښې وۀ. په پښتنو کښې دے ډیر هردلعزیز وۀ او ایرانیان ترینه هم خوشحاله وو. د هغهٔ په تخت نشیني باندې د خلقو امیدونه بیا د نوي سره تازه شول. چنانچه کومې کومې بدنظمي، بداعتمادي او ویره چې د خلقو په زړونو کښې د میرمحمود د طریقهٔ حکومت په وجه پیدا شوې وه د هغې د رفع کولو دپاره

هغهٔ کوشش شروع کړو. ځاے په ځاے باندې هغهٔ په خلقو کښې د میرمحمود د طریقو نه اظهار نفرت وکړو او چې په کومو خلقو باندې میرمحمود ظلمونه کړي وو د هغوي پسمانده ګانو له ئ ډیر ډیر رقمونه په طور د تاوان ورکړل. د شاه حسین د زامنو جنازې ئ په ډیر عزت او تکریم سره وکړې. او بیا ئ د پښتنو او ایرانیانو امراؤ یو لوے دربار وکړو. ټولو ته ئ تسلي ورکړه چې د میرمحمود د لاسه لګیدلي زخمونو باندې به هغه په خپل لاس پټئ لګوي. په ډیره لږه موده کښې هغهٔ ایرانیانو ته ډیرې معززې عهدې ورکړې. او په ملک کښې ئ یو زبردست انتظام قائم کړو.

د پښتنو د قوم یو زوړ عیب دا دے چې د ملکونو اخستو او فتح کولو نه پس او په دشمن باندې د مکمل بري حاصلولو نه پس په دوئ کښې پخپله پرې جنبې اختلافات او بې اتفاقي راپیدا شي. ټول عمر پښتنو هم په دې وجه بیا د شکست خورده دشمن نه هم په دې شان ماتې خوړلې ده. د کامیابی نه پس د هر یو دا کوشش پاتې شوے دے چې دې مشر شي او بیا هرکله چې دې مشر منتخب شوے دے نو د هغهٔ نورو ملګرو د هغهٔ د راغورځولو سازشونه کړي دي. هم د دې زوړ خوئ مطابق امان الله خان چې د میر اشرف خان او د میرمحمود د لښکر یو ډیر بهادر، قابل او بارسوخ جرنیل وهٔ هغهٔ د میراشرف په انتخاب باندې څهٔ موده پس ناراضګي ظاهره کړه او شهزاده طهماسپ سره ئ په میراشرف باندې د حملې کولو په غرض خط و کتابت شروع کړو. میراشرف د دې سازش نه خبر شو نو هغه او د هغهٔ ملګري ئ ګرفتار کړل او د بغاوت په جرم کښې ئ قتل کړل. په دې باندې قدرتي طور د پښتنو په کیمپ کښې بې اتفاقي پیدا شوه. میراشرف ته معلومه وه چې د پښتنو د بري اول شرط د هغوي پخپل منځ کښې اتفاق دے. د دې مطلب حاصلولو دپاره هغهٔ د پښتنو لویه جرګه راوغوښته او هغوي ته ئ واقعات بیان کړل. هرکله چې هغوي پوهه شول نو بیا ئ د ایران د هغې ټولو سردارانو دلجوئي شروع کړه چې شوک د میرمحمود دلاسه زخم خورده وو. علاوه د اندروني مشکلاتو نه بیروني خطرات هم ډیر زیات او په لویه پیمانه وو. روسیانو د ګیلان ټوله علاقه اخستې وه، ترکو جارجیا، اذربائجان، کردستان او د عراق په څهٔ حصه باندې قبضه کړې وه. شهزاده طهماسپ د اذربائجان په جنوب کښې او د مازندران په خواوشا کښې فوځي تیارے کولو. شهزاده طهماسپ د خپل پلار د معزولی نه پس د ایران ازادو خلقو د ټول ایران جائز بادشاه ګڼلو. او په دې حیثیت باندې هغهٔ د روسیانو او ترکو سره عهدنامې وکړې. روسیانو له هغهٔ د هغې ټولو صوبو د ورکولو اقرار وکړو چې کومې د کیسپین سمندر په غاړه وے او ترکو له هغهٔ د هغې ټولو صوبو ورکولو اقرار وکړو چې په کومو باندې هغوي د اول نه قبضه کړې وه. په شرط د دې چې ترک هغهٔ سره د ایران د تخت په واپس اخستلو کښې امداد وکړي. میراشرف د ټولو نه وړومبے ترکو ته توجه وکړه مګر

هغه په ملک دننه د امن قائمولو دپاره او د بل هيڅ بيروني طاقت سره د دشمنۍ نۀ پيدا کولو دپاره هغۀ د ترکو شهنشاه ته سفيران وليږل او ورته ئ ووئيل چې په دوارو سلطنتونو کښې د اتحاد او دوستۍ ساتلو په خاطر د ډير څۀ قربانۍ کولو دپاره تيار يم. مګر سلطان روم احمد خان تـه د ايران د اندروني بدنظمۍ او د اړې ګړې د حالت نه دا يقين وۀ چې مير اشرف زما مقابله نشي کولے. چنانچه هغۀ د پښتنو سفارت له دا جواب ورکړو چې کومې صوبې ما فتح کړې دي هغه پښتنو ته واپس پريښودو ته زۀ تيار نۀ يم.

هر کله چې دا خبرې اثرې کاميابې نۀ شوې نو سلطان روم احمد پاشا والئ بغداد، او حسين پاشا والئ موصل ته حکم وکړو چې وړومبے په کرمان شاه حمله وکړي او بيا همدان باندې خپل فوځونه راجمع کړئ. په دوارو ښارونو کښې د وړومبے نه هم د عبدالرحمٰن پاشا نومے يو فوځي جرنيل لاندې ترکي دستې پرتې وے. والئ بغداد چې د دې ټولو فوځونو سالار مقرر شو. هغۀ ته سلطان روم د طرف نه حکم وشو چې هر کله همدان واخلې نو مير اشرف ته يو حکم ورولېږه چې هغه فوراً شاه حسين او د هغۀ زامن چې په اصفهان کښې د تبرک په قلعه کښې قيد دي ازاد کړي. او هغه تـه زياتي حکم وکړه چې پښتانۀ دې فوراً د ايران حدونه پريږدي. کۀ چرې پـه دې شـرطونـو کښې يو شرط هم مير اشرف مسترد کړو نو بيا د هغۀ برخلاف د جنګ اعلان وکړه. مير اشرف ته دا قاصد د والئ ايران د طرفه راغے او هغۀ دا ټولې خبرې نامنظورې کړې. ترکو د پښتنو برخلاف اعلان جنګ وکړو. او احمد پاشا سره د شپيتۀ زره فوځـه او د اويا تـوپـو نيغ پـه اصـفهان باندې د حملې پـه غرض راروان شو. ميـراشـرف د دارالـخلافې نه د څلورو ورځو په مزل يو ځاے کښې خپل فوځ راجمع کړو. د اشرف تـوپـخانه او د هغۀ د فوځ شمار دواړه د ترکو نه کمزوري او ډير کم وو. د کيمرې په مقام چې د اصفهان او يزدجرد په منځ کښې يو ښار دے يو عظيم الشان جنګ وشو او د ډيره وختـه پـورې د فتح او د شـکسـت څۀ پتـه نـۀ لـګـيـده مګر په اخر کښې ترکو شکست فاش وخوړو. او دولـس زره تـنه سرې مړۀ او پنځوس توپې او ډير سازوسامان د جنګ د هغوي نه په ميدان جنګ کښې پاتې شو. مير اشرف د فتح نه پس هم ترکو سره نهايت شريفانه سلوک وکړو او د عـهـد و پيـمـان په دوران کښې هم هغۀ ترکو سره د ډير انصاف نه کار واخستو. د ميدان جنګ په لوټ کښې ماسوائ د وسلې نه هغه هر څيز واپس ورکړو. او احمد پاشا ته ئ وليـکـل چې د مسـلـمـانـانـو وررونـو مـال بـغير د وسلې نه په ما باندې جائز نۀ دے. زما اصلي خـواهش تاسو سره په صلح کښې وسيدل دي. او پخپل وطن کښې امن قائمول دي. چونکې د صـلـح نـامې پـه شـرطـونو کښې د ايران ډيرې صوبې لکه کردستان، لورستان، خوزيستان، تـورليس، سلطانيه، قزاز وغيره هغۀ ترکو ته پريښودې. او د سلطان روم خلافت ئ هم په ځان بـانـدې ومـنـلـو. دا شرطونه هغۀ په ځان باندې د کمزورۍ نه نۀ وو منلې بلکې په واقع کښې د

هغهٔ خواهش همسایه قومونو سره په دوستي باندې وسیدل وو. او چونکې میراشرف ډیر زبردست سیاستدان وهٔ او قابلیت ئې هم ډیر لرلو د دې دپاره هغهٔ د خپل سلطنت د حفاظت او د هغې د اندروني نظم و نسق په خاطر امن او صلح غوښتل.

چنانچه سلطان روم د دې په بدل کښې هغه د ایران جائز بادشاه ومنلو او شید پاشا ئې د سفیر په عهده میراشرف له راواستولو. میراشرف د هغې په بدل کښې محمد خان یو بلوچ سردار سلطان ته سره د ډیرو پیشکشونو راولیږلو. ترکو سره د صلح کولو نه پس میراشرف د شهزاده طهماسپ برخلاف چې د تهران او د قبرین په ښارونو قابض وهٔ روان شو. شهزاده طهماسپ شکست وخوړو او مازندران ته وتښتیدو. مګر د قبرین او تهران خلقو په ښار باندې د پښتنو قبضه پرې نهٔ ښوده او چونکې د میراشرف موجودګي په اصفهان کښې د نورو کارونو په وجه ضروري وه. د دې دپاره هغهٔ د دواړو ښارونو محاصره وکړه د فوځ کمان ئې سردار سیدال خان ناصر له ورکړو او پخپله اصفهان ته راغے. په ډیره لږه موده کښې دواړه ښارونه فتح شول. د قندهار په علاقه باندې د میرمحمود نه پس میرحسین د هغهٔ ورور قابض شو. په سیستان کښې او د خراسان په څهٔ حصه کښې او د هرات په ښار کښې د ملک محمود چې د زوړ شاهي خاندان نه وهٔ خپله بادشاهي قائمه کړه. په دې وجوهاتو باندې میراشرف ته د خپل وطن نه د کومک د رارسیدو او یا د فوځونو د راتلو څهٔ امید پاتې نشو. او د هغهٔ تعلقات او د آمدورفت لار خپل اصلي وطن سره منقطع شوه. پس هغهٔ روس ته د ګیلان قبضه پریښودله او په اصفهان کښې د یوې مضبوطې قلعې د پښتنو د فوځونو او د کورونو د وسیدو دپاره د جوړولو حکم وکړو. او ټول پښتانهٔ ئې په دغه قلعه کښې اباد کړل.

په دې اثنا کښې شهزاده طهماسپ د صفوي خاندان د تخت نشین کولو په کوششونو کښې هم هغه شان شپه او ورځ مصروف وهٔ. د هغهٔ د خوش قسمتۍ نه د هغهٔ په فوځ کښې یو داسې زبردست جرنیل پیدا شو چې هغهٔ نهٔ صرف په اخر کښې خپل ملک د میراشرف نه واخستلو بلکې د تمام هندوستان، خراسان، افغانستان او د ایران بادشاه شو. د دې سړي اصلي نوم طهماسپ قلي خان وهٔ دې په کال 1688ء کښې د ایراني خراسان په صوبه کښې پیدا شو د دهٔ پلار امام قلي یو ترک ګډبه وهٔ او په هلکوالي کښې به ئې د خپل پلار ګډې څرولې.

چې ځوانۍ ته ورسیدو نو د غلا غلتي پیشه ئې اختیار کړه او لارې به ئې وهلې چې په دې کښې ئې د بهادرۍ نوم پیدا کړو نو کله کله به د یو لوے سردار سره نوکر شو. په دې زمانه کښې به اُزبک د ایران په بعضې بعضې ضلعو باندې د لوټمار دپاره په لویو لویو لښکرونو کښې راکوزیدل او طهماسپ قلي خان په ډیرو معرکو کښې په حیثیت د یو معمولي ملازم د دوئ په مقابله کښې په ډیره کامیابۍ سره جنګونه کول. د دهٔ د ځوانۍ اکثره

حصه دغه شان په غلا غلتی او په ډاکو کښې او کله کله د یو لوی خان په ملازمت کښې تیره شوه. په لږ عمر کښې ئ خپل قابلیت او زړورتیا په وجه ډیره ترقي وکړه. او د خپلو خدمتونو په عوض کښې ډیر انعامات او کرامات حاصل کړل. مګر د خپلو بې اعتدالو په وجه بیا ډیر زر راپریوتو او د خپلې بدخویي په وجه ئ د ډیر قسمه سزا ګانې هم وخوړلې. د دې سزا ګانو نه چې تنګ شو نو خپل ترۀ سره چې د قلات حاکم وۀ نوکر شو لیکن د خپلې بدعملی په وجه د هغه ځاے نه وشړلې شو. طهماسپ قلي بیا د دې نه پس ډاکه ماري شروع کړه دا وخت د دۀ عمر قریباً څلیریشت کاله وۀ. چې صفوي خاندان د میرمحمود غلجي د لاسه د ایران د تخت و تاج نه محروم شو. او په ملک کښې هر طرف ته بدامني او بې چیني خوره شوه. چونکې طهماسپ قلي خان یو مشهور ډاکو او د ډاکوانو مشر وۀ او د ملک د بدنظمی په وجه ئ په دې پیشه کښې ډیره ګټه وه په دې وجه ډیر خلق د لوټمار په طمع د دۀ په ټولي کښې شامل شول.

شهزاده طهماسپ د معزول شوي شاه حسین زوے هم د دۀ د نوم نه خبر شو او د هغه د ترۀ په ذریعه ئ طهماسپ قلي ته سوال جواب ولیږلو چې تۀ سره د ملګرو زما په فوځ کښې نوکر شه. طهماسپ قلي چونکې د ایران په ملک کښې ډیرې رهزنی او لوټمار کړے وۀ او د شهزاده د باقاعده فوځ نه په لرې لرې ګرځیدو او چونکې په دې د هغۀ او د هغۀ د ملګرو ژوند د میراشرف او د طهماسپ شهزاده د فوځونو د لاسه په میرټون وۀ. په دې وجه هغۀ د شهزاده ملازمت په دي شرط منظور کړو چې ماته به زما د تیرو شوو جرمونو په سزا کښې شهزاده هیڅ نۀ وائي. شهزاده فوراً معافي نامه د طهماسپ قلي خان په نوم قلات ته د هغۀ ترۀ له ورواستوله. طهماسپ قلي په چارچاپیره غرونو کښې پټ وۀ. د معافي نامې اخستو دپاره قلات ته راغے او قلعې ته د ننوتو سره ئ اول معافي نامه واخسته بیا ئ خپل ترۀ قتل کړو او په قلعه باندې قابض شو. او بیا ئ د شهزاده طهماسپ نه د دې جرم بله معافي نامه حاصله کړه. او د هغۀ ملازمت کښې داخل شو. په دې ځاے کښې هم هغۀ دا شان ورانی وکړې چې شهزاده طهماسپ مجبور شو چې هغه باغي وګڼي. چنانچه شهزاده د هغۀ برخلاف څۀ فوځ ولیږلو. مګر اوس د طهماسپ قلي طاقت او زور زیات شوے وۀ. سره د خپلو سړو فوراً د شهزاده طهماسپ دربار ته راغے او ترینه په زور په ملک کښې د وسیع اختیاراتو شرطونه واخستل او د هغۀ د ټولو فوځونو ئ په زور ځان سالار اعظم کړو. چونکې عادتاً ډیر قابل او بهادر جرنیل وۀ د شهزاده طهماسپ په ټول فوځ کښې ئ ډیر زر بیشانه رسوخ او هردلعزیزي حاصله کړه. په کال 28-1627ء کښې طهماسپ قلي په ملک محمود ځان د خراسان بادشاه کړو او بیا ئ د ملک محمود برخلاف فوځ کشي وکړه. د خراسان د اخستو نه پس هغه په هرات باندې قابض شو. د هغې نه پس هغه مازندران ته راغے او د میراشرف

برخلاف ئ د يو عظيم الشان جنګ او د پښتنو د ايران د ملک نه د ايستلو تجويزونه وکړل. پـه دې سـلسله کښې هغۀ اول په نيشاپور باندې حمله وکړه او درې زره پښتانۀ ئ پکښې قتل کړل. د نيشاپور نه پس هغۀ د خراسان په ډيرو مقاماتو باندې حملې وکړې او ډيرې علاقې ئ د خراسان په ملک کښې قبضه کړې. په دغه ورځو کښې ميراشرف د يزد په محاصره کښې لګيا وۀ کوم چې د ميرمحمود فوځونو په اصفهان باندې د راتللو په وخت کښې نۀ وۀ اخستے. مګر پـه دې ځاے د ميراشرف ډير چيده چيده افسران او د پښتنو لښکر تباه شو چونکې ميراشرف تـه د خپل وطن نه د هيڅ قسم امداد د راتلو اميد نه شو کيدے ځکه چې هغلته کښې ميرحسين د ميرمحمود ورور ځان بادشاه کړے وۀ او د مقابلې دپاره ئ خپل فوځ کښې ډيـر ايـرانيـان بـرتي کړل. د طهماسپ قلي د فتوحاتو هغۀ سره ډير غم پيدا کړو او نور ډيـل کول د هغۀ دپاره خطرناک وۀ. طهماسپ قلي اوس سره د خپل فوځ په اصفهان باندې د حـملې تيارى وکـړې او چـونـکې په ايرانيانو کښې بيا زړاۀ قومي جذبات د هغۀ روزافزون فتوحاتو پـه وجـه تـازه شوي وو د دې دپاره د هغۀ فوځ ورځ په ورځ زياتيدو او د ميراشرف فوځونه ورځ په ورځ کمزوري کيدل.

هـرکله چې د ميراشرف فوځونه په طهماسپ قلي باندې د حملې کولو دپاره د يزد نه روان شو نو طهماسپ قلي په مازندران کښې پاتې شو په دې غرض چې د ميراشرف فوځ به تـر ما پورې رارسيدو کښې نور هم ډير زړۀ ماتې او ستړے شوے وي او زما فوځ به بالکل تازه دم او نـور هـم طـاقـتـور شـوے وي. طهـمـاسـپ قـلـي د خپـلـو فوځونو نه ګير چاپيره خندقونه وکـنـسـتـل او د حمله آور فوځ نه ئ د ځان ساتلو دپاره ډير حفاظتونه وکړل. د ميراشرف فوځ قـريـبـاً ديـرش زره پـه شـمـار کـښـې وۀ مګر هغې-کښې نيم پښتانۀ او نيم د نورو قومونو نه وو. چـونـکې ايراني فوځ هيچرې په ميدان جنګ کښې تراوسه پورې د پښتنو لښکر ته په حمله کښـې نـۀ وۀ ټـيـنـګ شـوے نـو ځـکه دې فوځ د رارسيدو سره د حملې کولو اراده وکړه مګر ميـراشـرف د دې خـلاف شـو او يـو څـو ورځـې صبر ئ وکـړو. مـګـر چې څۀ وخت هغـه د چـارچـاپـيـره علاقې نه د اسلحې او د خوراک په حاصلولو کښې تکليف محسوس کړو نو په شپږم نومبر 1728ء هـغۀ د طهماسپ قلي په فوځ باندې د حملې کولو دپاره خپل فوځ ميدان جـنـګ تـه راوويستو. د جنګ مقام د مغان د ښار نه قريباً اووۀ ميله نمرخاتۀ ته د نعيم اباد او د مِـلا پـه مـنـځ کښې واقع وۀ. ميراشرف د دشمن په ټول فوځ باندې سراسر حمله وکړه مګر ايـرانيـانـو په ثابت قدمي او استقلال هغوي پسپا کړل. پښتنو د ايرانيانو د رويې نه فوراً معلومه کـړه چې د طهماسپ قلي لښکر د ايرانيانو د عام لښکر په شان نۀ دے د دې دپاره هغوي خپل ځـان سـنبال کړو او د ايرانيانو په ميسره باندې ئ ډيره زبردسته حمله وکړه. ليکن طهماسپ قـلـي خپل فوځونه داسې په ترتيب سره وجنګول چې پښتنو په ټوله ورځ کښې هيڅ قابل قدر

اثر په دشمن باندې پیدا نهٔ کړو. عاقبت د هغهٔ فوځ د پرله پسې حملو په وجه او بیا بیا د ماتې خوړلو په سبب بې حوصلې شو او د هغوی د حملو شدت او سختي کمه شوه. طهماسپ قلي فوراً پوهه شو او سمدستي ئې خپل ټول ایراني فوځ ته په پښتنو باندې د عامې حملې حکم ورکړو. او په داسې جوش باندې په هغوي باندې راپریوتل چې د میراشرف فوځ شکست وخوړو.

عبدالله خان هراتي وائي چې په دې جنګ کښې د طهماسپ قلي توپخانه د لسو فرانسیسي افسرانو د کمان لاندې وه. د فیریر بیان دے چې پښتنو په دې جنګ کښې د بهادرۍ او د مردۍ داسې کارنامې وښودلې چې ایرانیان حق حیران پاتې شو. مګر د میراشرف په قسمت کښې د ایران نه وتل لیکلي وو. دولس زره فوځ ئې په جنګ کښې مړ شو. دشمن د پښتنو د فوځ تر ډیر لرې پورې تعاقب وکړو او ځاے په ځاے پښتنو هغوي سره مقابلې وکړي مګر ماتې ئې وخوړله. د پښتنو پاتې شوے فوځ په ډیرې تیزۍ سره په اصفهان کښې راجمع شو او د خپل بال بچ او مال متاع ئې په هغه قلعه کښې واچول چې کومه میراشرف ورومبی د داسې وخت دپاره جوړه کړې وه. په قلعه کښې میراشرف څهٔ چیده چیده خلق د حفاظت دپاره واچول او پخپله بیا سره د شل زره فوځ چې په هغې کښې پښتانهٔ، تاتار، کرد او نور ډیر قومونه هم وو د اصفهان نه بهر ځلیریشت میله د طهماسپ قلي د مقابلې دپاره ووتل. میراشرف خپل فوځونه د مورچه خور نومے یو کلي قطب په نمرخاتهٔ په یوه وچته زمکه واچول او هغه ځاے کښې ئې د ایراني فوځ انتظار وکړو.

طهماسپ قلي چې راورسیدو نو ورته معلومه شوه چې پښتانهٔ په ډیر محفوظ ځاے کښې پراتهٔ دي. د دې دپاره فوراً حمله باندې هغوي د دې ځاے نه ویستل نامکن دي. چنانچه د میراشرف نه دوه میله فاصله باندې هغهٔ خپل فوځونه د دمې خوړلو دپاره دیره کړل. درې ورځې پس د یوې تکې تورې شپې په وروستي پار کښې خپل فوځ ته طهماسپ قلي د تیارۍ حکم ورکړو. او په پښتنو باندې د شا د طرف نه د حملې کولو په نیت باندې د مورچه خور کلي په طرف روان شو. اتفاقاً په دغه وخت ډیره سخته سیلۍ هم راغله او پښتنو ته د هغوي د راتلو هیڅ پته ونهٔ لګیده. هم دغه شان ایرانیان د هغوي په کیمپ باندې راپریوتل او اګرچې هغوي په ډیره بهادرۍ سره جنګ وکړو مګر ایرانیان د ورومبی فتح په وجه ډیر زړور شوي وو او پښتنو له ئې شکست ورکړو. ځلور زره پښتانهٔ په دې جنګ کښې په ډیره خوانمردۍ سره مړهٔ شول. اوس د پښتنو پښې ټینګیدل ډیر مشکل وو. د پښتنو د فوځ شکست خورده دستې اصفهان ته وتښتیدې او هر څوک د خپل بال بچ په سنبالولو او د خپل مال او دولت په محفوظ کولو کښې لګیا شو. میراشرف سره د دولس زره سورو او د خپلو ټولو خزانو او جواهرو شیراز ته روان شو. چې په هغه ځاے کښې د طهماسپ قلي د مقابلې

دپاره تيارے وکړي. مګر طهماسپ قلي هغهٔ ته د فوځ د تنظيم کولو موقع په لاس نهٔ ورکوله. او د يو څو ورځو د ارام نه پس هغهٔ ميراشرف د فارس د صوبې نه هم د وښکلو بندوبست وکړو. پښتانهٔ يو ځل بيا شيراز نه بهر د طبنده مير سيند په غاړه د طهماسپ قلي د فوځونو مقابلې ته ووتل. مګر بيا هم هغوي شکست وخوړو او په شيراز باندې پريوتل.

طهماسپ قلي فوراً د شيراز محاصره وکړه او قلعه بند خلقو ته ئ سوال جواب وليږلو چې کهٔ چرې تاسو په اتهٔ څلويښت ګينټو کښې ميراشرف ماته حواله نهٔ کړو نو زهٔ به هر يو سپاهي په ډيره دردناکه طريقه قتل کړم. د شيراز خلقو دا خبره منظوره کړه مګر چې څهٔ وخت ميراشرف ته دا خبره معلومه شوه نو سره د دوه سوه سورو تورې په لاس د شيراز نه راووتلو او داسې ناساپه د طهماسپ قلي په فوځ باندې راپريوتل چې د هغوي په صفونو کښې ئ لار ځان لـه وويستلـه او د افغانستان په طرف باندې روان شو. طهماسپ قلي د ميراشرف ګرفتارولو دپاره ډير فوځونه وليږل مګر ميراشرف خپل ټول سازوسامان پريښودو او صرف د دوؤ ملګرو سره سيستان ته ورسيدو. هلته کښې بعضې مؤرخين وائي چې ميراشرف په لاره ناجوړه شو او مړ شو. او بعضې وائي چې هغه عبدالله خان نومې يو بلوچ سردار قتل کړو. او د هغهٔ سر ئ شهزاده طهماسپ لـه ورواليږلو. دغه شان قريباً د نهو کالو د بادشاهۍ نه پس د غلجو حکومت په ايران کښې ختم شو.

ميراشرف يو ډير قابل او بهادر غلجے وهٔ. د طبيعت نه ډير منصف مزاج او انصاف پسند وهٔ د فتح او د برې په وخت کښې ډير فياض او د لوے زړهٔ خاوند وهٔ. هغهٔ د خپلو مفتوحو دشمنانو سره هميش د ډيرې مهربانۍ سلوک کړے دے. د هغهٔ د زړهٔ منشا دا وه چې ايرانيان او پښتانهٔ دې اوس په صلح او دوستۍ سره وسيږي او د دې مطلب حاصلولو دپاره هغهٔ ډير کوششونه وکړل. مګر چونکې ميرمحمود د ايرانيانو په زړهٔ کښې د پښتنو د طرف نه د ډير سخت او ناجائز سلوک په وجه يو قسم نفرت پيدا کړے وهٔ. چې هغې د پښتنو د سلطنت بنيادونه خوځولي وو د دې دپاره ميراشرف په دې کښې ناکامياب شو او د قدرت هم دا تقاضا وه ځکه چې په کومو وجوهاتو باندې ايرانيانو د پښتنو د لاسه شکستونه خوړلي وو او د خدائے تعالیٰ غيرت او قهر د ايرانيانو د ظلم په وجه د هغوي برخلاف وچت شوے وهٔ هم هغه وجوهات د پښتنو د تباهۍ هم باعث شول. پښتنو هم د ايرانيانو پشان د خپل طاقت او عظمت نه ناجائزه فائده واخسته او د حکومت کوم امانت چې خدائے پاک هغوي ته ورکړے وهٔ په هغې کښې هغوي د ديانتدارۍ نه کار وا نهٔ خستو. پس څنګه چې ايرانيان د پښتنو د ملکه راووتي وو دغه شان پښتانهٔ هم د ايران د ملک نه لغ راووتل. د دې متعلق فيرير يو فرانسيسي مؤرخ ليکي چې د پښتنو په زمانه کښې د حکومت کښې د ټول سلطنت ايران دريمه برخه ابادي بالکل تباه شوي وه. زمکې بالکل بنجرې شوې وے د اوبهٔ خور دپاره

نهرونـه او ولـې چـې پـه مـلكونو كښې موجودې وې هغه د پښتنو فوځونو بالكل ورانې كړې وې. لـوي لوي عمارتونه ئ مسمار كړل. چونكې د پښتنو مقابله يو ډير ښځونـك، كمزوري او بـدچلـنـه قوم سره وه چې په هغوي كښې قومي احساسات او خودداري بالكل مفقود شوي وه د دې دپـاره پښتـانـۀ كـامياب شول او باوجود د دې چې په شمار كښې هغوي كم وو مگر چـونـكې ثـابـت قـدم وو. د دې دپاره د ايران په خلقو باندې هغوي غلبه بياموندە. د پښتنو د بهـادرۍ نـظيرونه د دنيا په تاريخ كښې ډير كم بياموندې شي او هغوي د جنگ په چل خو ښۀ پـوهيږي مگر د حكومت چل ورله نۀ ورځي. هر ځاے ته چې د هغوي حكومت ورغلے دے نو هـغلته ئ لوټمار كړے دے. قدرتي طور باندې د دې نتيجه په ملك كښې بغاوتونه او بدامني وي. او د دې دپـاره دا ضـروري ده چـې د پښتـنـو يو لوے فوځ دې په ملك كښې هروخت د حكومت په قائمولو كښې مصروف وي. په اخر كښې هغوي د شلو جنگونو په وجه كمزوري شول او چونكې د افغانستان نه د هغوي دپارہ كومك راتلل بند شو په دې وجه هغوي په فوځ كښې د نورو قومونو خلق برتي كړل. چې د هغوي په وفادارۍ باندې د هيڅ قسمه اعتبار نۀ وۀ او په يو جنگ كښې به هم هغوي د زړۀ د اخلاصه جنگ نۀ كولو.

## نادر شاه

د پښتـنـو د ايـران نـه د وتـلـو نـه پـس شهـزاده طهـماسپ د ايران بادشاه شو. شاه طهـمـاسپ، طهماسپ قلي خان له د دې خدماتو په عوض كښې د ايراني خراسان، مازندران، سيستـان او د كـرمـان د صـوبـو حكومت وركړو. دوه كاله پس د ايران په هر طرف كښې ئ دومـره فتـوحـات حـاصـل كړل او دومره اقتدار ئ خپل پيدا كړو چې شهزاده طهماسپ ئ د تخت نه كوز كړو او د هغۀ وركوټي زوے شاه عباس ئ برائ نام د ايران بادشاه كړو. د دې نه پـس هـغـۀ د اصـفـهـان نـه پـه بغداد باندې د حملې كولو په نيت باندې روان شو. ترک د هغۀ مـقـابلې ته راووتل او ورله ئ شكست وركړو. مگر څۀ لږه موده پس هغه بيا ډير فوځ د تركو بـرخلاف روان كړو او په كال 1733ء كښې هـغوي له ئ شكست وركړو. بيا هغه ارمينيا او جـارجيـا دوبـاره فتح كړل او سلطان روم سره ئ صلح وكړه. بيا چې ئ څۀ وخت د وركوټي بـادشـاه شاه عباس د مرگ واوريدل نو ټول اميران او وزيران ئ راجمع كړل او خپل ځان ئ وربانـدې بادشاه كړو. په شپږويشتمه فرورۍ 1736ء كښې هغه تخت نشين شو او د نادر شاه شهنشاه ايران لقب ئ اختيار كړو. په كال 1738ء كښې هر كله چې هغۀ پښتانۀ د خپل ملک نـه وويستـل او څۀ ئ قتل كړل نو بيا ئ په هرات باندې قبضه وكړه. د هغې نه پس ئ د فراح مـضبـوط قلعه د ايران په سلطنت كښې شامله كړه او د هغې نه پس ئ چې څنگه وړومبے ذكر شـوے دے تـركـو سـره جـنـگونه وكړل. د تخت نشيني نه پس هغۀ په بختياري قبيلې چې د

ډيرې مودې نه ئ په ايران کښې لوټمار کړے وۀ فوځ کشي وکړه او د هغوي د مطيع کولو نه پس ئ په قندهار باندې د لښکرکشي تياري وکړه. د دې غرض دپاره هغۀ قريباً يو لک فوځ تيار کړو. په کال 1737ء کښې په دغه لوري روان شو لکه څنګه چې وړومبے ذکر شوے دے په قندهار کښې ميرحسين د ميرويس غلجي دويم زوے بادشاه وۀ. وړومبے هغۀ ميرحسين ته قاصد وليږلو چې د ايران باجګزاري منظوره کړه او اصفهان ته د اظهار اطاعت دپاره زما سلام ته حاضر شه. مګر ميرحسين هغۀ ته سوال جواب وليږلو چې د خدائے تعالىٰ په ټولو نعمتونو کښې کۀ چرې يو نعمت ماته او زما قوم ته ډير خوږ او عزيز دے هغه قومي ازادي، عزت او خودداري ده او فوراً ئ د قندهار د مضبوطولو کوششونه شروع کړل. تردې وخته پورې قندهار او د هغې چارچاپيره ملک د قومي خودمختارى په وجه ډير عروج او خوشحالي حاصله کړې وه. په ټول ملک کښې هره قبيله ځان له په اندروني طور باندې خودمختاره وه او صرف د ميرحسين مشري او بادشاهي په ځان هغوي د قومي اتفاق ساتلو دپاره تسليم کړې وه. په دې وجه د قندهار په هره حصه کښې د امن و امان د انصاف د خوشحالى دوردوره وه. د ازادى په شپږويشت کاله کښې د هغوي د خانانو د انصاف پسندى په وجه د هغوي تجارت، ابادي او دولت ډير زيات شوے وو. او بالخصوص د ميرحسين زمانۀ حکومت چې کال 1722ء نه شروع شوې وه د قندهار دپاره د ډير لوے عروج او ترقى زمانه وه.

پس هر کله چې د نادر شاه د حملې خبر ولګيدو نو ټول پښتانۀ بالاتفاق د خپلې ازادى او خودمختارى د تحفظ دپاره د ميرحسين د جرګې د لاندې راجمع شول. په دې زمانه کښې د قندهار نه قطب او نمرخاتۀ دواړو طرفو ته وچت وچت غرونه پراتۀ وو او ښار د دې غرونو په لمن کښې پروت وۀ. د ښار نه چارچاپيره د ګټو بيشانه لوي لوي برجونه او قلعه ګانې پرتې وے او په دې غرونو کښې د يو د سوکې دپاسه يوه زبردسته قلعه وه چې د هغې د بلندى نه ټول ښار لاندې وۀ. د برجونو په منځ کښې د تلو راتلو محفوظې لارې هم جوړې شوې وے. ميرحسين په ښار کښې قريباً ديرش زره فوځ او د خوراک او نور سازوسامان يوه عظيم الشانه ذخيره چې د ډيرې مودې د محاصرې دپاره کافي وه راجمع کړه او په بيل بيل برج او قلعه کښې ئ د فوځ دستې او د خوراک سامان وغورځولو.

نادر شاه قندهار ته د هرات او د فراه په لارې راروان شو. او هيچا ئ څۀ مقابله ونکړه. مګر د ګرشک په مقام د ميرحسين فوځونو چې په شمار شل زره وو هغه د هلمند سيند د راپورې وتلو نه منع کړو. د يو څو ورځو د جنګ نه پس هغۀ ته معلومه شوه چې دشمن په تعداد کښې ډير زيات دے او په ميدان د مقابلې کولو طاقت زۀ نۀ لرم پس هغه قندهار ته راواپس شو او قريباً دوه زره سړي ترينه مړۀ شول. د نادر شاه دا خيال وۀ چې اوس

به ډېر زر قندهار واخلم ولې څهٔ وخت چې هغه د قندهار خواوشا ته راورسيدو او د هغهٔ په استحکاماتو باندې ئ غور وکړو او د پښتنو جوش و خروش نه واقف شو نو د هغهٔ په اميدونو باندې اوبهٔ توئ شوې. هغهٔ سره لويې لويې د محاصرې توپې هم نهٔ وې. پس ځرنګ چې ميرمحمود د اصفهان محاصره په ښار کښې دننه د قات پيدا کولو دپاره کړې وه دغه شان نادر شاه هم د قندهار محاصره په دې نيت شروع کړه چې خلق په لوږه باندې د خپل اطاعت په منلو مجبور کړم. د محاصرې د شروع کيدو نه يو څو ورځې پس هغه د خپل کيمپ په خوا کښې يو نوے ښار ابادول شروع کړل او په لږه موده کښې د هغې عمارتونه جوړ کړل. او د هغې نوم ئ نادر اباد کښيښودو. د دې ښار د جوړولو نه د هغهٔ مطلب دا وهٔ چې د خپل فوځ دپاره د وسيدو ځايونه پيدا کړم او دويم مطلب د هغهٔ دا وهٔ چې د پښتنو دا يقين راشي چې د قندهار د اخستو نه بغير زهٔ د دې ځاے نه نهٔ ځم. د محاصرې په دوران کښې هغهٔ د خپل آمدورفت او رسد رسانۍ دپاره ذريعې مستقلې او مضبوطې کړې او د خپلو فوځونو يوه حصه ئ چې تازه دم د ايران نه رارسيدلې وه د چارچاپيره ملک مسخر کولو کښې ولګوله. هر کله چې د هغهٔ زوي رضا قلي خان د چارچاپيره ټولې صوبې فتح کړې او بلخ او ترکستان ئ (چې اوس ورته افغاني ترکستان وائي) هم واخستو نو بيا د دريائے جيحون نه پورې وتو او د اُزبکو يو لوے لښکر له ئ شکست ورکړو او په بخارا باندې ورورړاندې کيدو خود نادر شاه په سوال جواب باندې راواپس شو. اوس نادر شاه ټول فوځونه د قندهار په ښار باندې د حملې کولو دپاره تيار کړل. د محاصرې تقريباً يو نيم کال شوے وهٔ او نادر شاه بې صبره شوے وهٔ. د عظيم الشانې تيارۍ نه پس هغهٔ خپل فوځونه د قلعه ګانو په قبضه کولو او په فصيل باندې د ورختلو دپاره ورورړاندې کړل. په بيشماره ځايونو باندې د فوځ عظيم الشانې دستې وړاندې شوې. د دې دپاره چې پښتنو ته په هيڅ ځيز باندې هم د ارام موقع حاصله نشي. تر دوؤ ورځو پورې ډېر خونريز جنګونه وشول مګر د قندهار يوه قلعه هم وانهٔ خستې شوه. د ايرانيانو دا قسم مقابله چرې هم چا نهٔ وه کړې. او په دې وجه په ايراني فوځ کښې بددلي پيدا شوه. مګر په دريمه ورځ باندې د بختيارانو د قبيلې فوځونو په دومره شدت او بهادرۍ سره د پښتنو په برجونو باندې حمله وکړه چې په هغې کښې ئ ډېر برجونه واخستل. په دې باندې ايراني فوځ زړور شو او په ډېر جوش سره ئ سراسري حملې وکړې اګرچې د بختيارانو ډېر بيشانه نقصان وشو مګر د شپږو ګينټو په عرصه کښې هغوي په ټولو بهرنو برجونو او قلعه ګانو باندې چې بعضې پکښې د غرونو په سوکو او بعضې په غونډو واقع وے قبضه کړې. په دې قلعه ګانو او برجونو کښې هغوي خپلې توپې په پړو باندې د غرونو د سوکو دپاسه وخيژولې. اوس هغوي په ښار باندې ګوله باري شروع کړه. صرف يوه قلعه چې د ټولو نه وچت غر باندې وه نور ټول برجونه او قلعه ګانې د هغې نه ښکاريدلې لا نهٔ وه فتح کړې.

میرحسین سره د خپلو یو څو بهادرو پښتنو دې قلعې ته وردننه شو او د هغه ځاے نه ئ نادر شاه ته د صلح پیغام ورولیږلو. د نادر شاه په زړه باندې د پښتنو د بهادرۍ او شجاعت دومره زیات اثر شوے وۀ چې اوس هغه میرحسین سره بالکل رضا شو.

اصل خبره دا وه چې نادر شاه په هندوستان باندې د حملې کولو په نیت د ایران نه راروان شوے وۀ او دهلي نه هغۀ ته د بادشاه د بعضو نمک حرامو د طرف نه پټ پټ خطونه هم راغلي وو او د هغۀ دا مطلب وۀ چې په هر شان چې وي چې د افغانستان نه زر وځم. او چونکې پښتانۀ ډیر ځوانمرد او دلیر قوم دے دوئ هم زۀ د ځان سره ملګري کړم.

پس په کال 1738ء کښې هغۀ میر حسین سره په دې شرطونو صلح وکړه چې میرحسین به د نادر شاه د طرف نه د قندهار ګورنر وي او د دې په عوض کښې به میرحسین یو لښکر نادر شاه سره د هندوستان د حملې دپاره لیږي. نادر شاه د دې نه پس کابل ته روان شو او میر حسین سره د نورو وسیدونکو د قندهار د نادر شاه په ښار کښې اباد شول چې کوم هغۀ د خپل فوځ دپاره اباد کړے وۀ او زوړ ښار ئ پریښودو. تر اتو کالو پورې د دې ښار نوم نادر اباد وۀ. مګر چې څۀ وخت په کال 1747ء کښې نادر شاه قتل کړے شو نو د دې ښار نوم بیا قندهار شو. په ښار کښې میرحسین او د قندهار نور خلق په دې وجه واچول چې بیا پښتانۀ چرې زما د حکومت برخلاف د زوړ ښار د مضبوطو قلعه ګانو او برجونو په وجه زما نه څۀ بغاوت ونۀ کړي. پس هرکله چې میرحسین سره د خپل قام نوي ښار ته لاړو نو نادر شاه هغه ټول برجونه او قلعه ګانې چې د زوړ ښار دپاره جوړې شوې وے مسمار کړې، پنځلس کاله پس احمد شاه درانے چې څۀ وخت د پښتنو بادشاه شو نو هغۀ د نادر اباد نه یو نیم میل لرې نمرخاتۀ ته یو دریم ښار اباد کړو او ټول خلق ئ د نادر اباد نه خپل ښار ته راوستل او بیا د دغې ښار نوم قندهار شو. موجوده قندهار هم هغه دے چې کوم احمد شاه ابدالي اباد کړے دے.

د قندهار د فتح کولو نه پس نادر شاه کابل ته روان شو. دا ښار د غلجو په زمانۀ حکومت کښې هم هغه شان د مغلو د لاندې وۀ او د هغوي د طرف نه په کال 1738ء کښې د کابل ګورنر شیر خان نومے یو سړے وۀ او د مشرقي افغانستان ګورنر ناصر خان وۀ دې دواړو حاکمانو ته نادر شاه سوال جواب ولیږلو چې بهتره به دا وي چې بغیر د جنګ و جدل نه زما اطاعت قبول کړئ. ناصر خان د نادر شاه په رسیدو سره پیښور ته ورسیدو مګر شیر خان د کابل ګورنر د مقابلې تیاري وکړه. نادر شاه د کابل چارچاپیره غرونو باندې څرخي توپې کښېښودلې او اخر د یو څو ورځو د ګوله بارۍ نه پس ئ د قلعې د فصیل دیوالونه مات کړل. بیا ئ پرې د لښکر سره چپاؤ وکړو او په جون 1738ء کښې په کابل قبضه وکړه. او بیا هغه د پیښور په طرف روان شو. د افغانستان د مکمل تسخیر نه پس د نادر شاه ایراني فوځ سره د

پښتنو قریباً شپاړس زره فوځ نور یو ځاے شو. په دې فوځ کښې زیات تر ابدالیان او غلجي شامل وو.

په وروستنو صفحو کښې د دې خبرې ذکر شوے دے چې د میرمحمود غلجي په زمانه کښې د ابدالیانو قبیلې د اسد اللّٰه‌خان په مشرۍ کښې په هرات او سبزوار باندې خپل حکومت قائم کړے وۀ مګر میرمحمود هغوي له د فراه په خواوشا کښې شکست ورکړے وۀ. د دې شکست په وجه په ټول خراسان کښې اړے ګړے وۀ د څۀ مودې دپاره په سبزوار او په هرات باندې د ملک محمود تسلط وۀ. د ملک محمود ذکر هم وړومبے شوے دے مګر د میرمحمود غلجي شاه ایران د مرګ نه پس او میراشرف او شاه طهماسپ د جنګونو په دوران کښې په هرات او دخراسان په ډیرو حصو کښې بالکل بادشاه ګردي وه. مګر په دې زمانه کښې د ابدالیانو د قبیلې قوت ورځ په ورځ زیاتیدو او چونکې هغوي هم معزز پښتانۀ وو او یوه طاقتوره قبیله وه. په دې وجه غلجو په خپل دوران حکومت کښې په هغوي باندې خپل سلطنت نۀ وۀ قائم کړے. او دې ټوله زمانه کښې هغوي د هرات او د هغې خواوشا ملک کښې تقریباً بالکل ازاد وو. نادر شاه هم هرات او سبزوار د ابدالي پښتنو نه فتح کړے وۀ او چونکې هغه پخپله بهادر وۀ هغۀ بهادر قومونه پیژندل. او د هغوي د بهادرۍ به ئې ډیر قدر کولو. په دې وجوهاتو هغۀ د ابدالیانو دولس زره او د غلجو شلور زره ځوانان د ځان سره ملګري کړل. په ابدالیانو باندې اتۀ ابدالیان او په غلجو باندې دوه غلجي سرداران مقرر کړل. او د دې فوځونو سپه سالار اعظم ئې نور محمد خان علیزے چې د ابدالي قبیلې نه وۀ مقرر کړو. دا فوځ سره د ایراني فوځ د هندوستان د حملې په نیت اول د خیبر په دره کښې راروان شو. د نادر شاه دا خوش قمستي وه چې د دهلي بادشاه د افریدو مواجبونه نۀ وو ورکړي. کۀ چرې دا مواجبونه پخپل وخت افریدو ته ورکړي شوے وے نو نادر شاه به سره د خپل دومره زور او طاقت د خیبر د غرونو نه بچ نۀ وۀ وتلے. مګر د مغلو سلطنت په زوال وۀ او اراکین سلطنت به د خلقو ټول مواجبونه او تنخاګاني ځان له خوړلې. بیا هم افریدي د روپو نه بغیر د نادر شاه فوځ په خپلو غرونو او لارو کښې پریښودو ته تیار نۀ وو. نادر شاه د روپو ورکولو نه بالکل انکار وکړو او په زور باندې په درۀ خیبر ورننوتلو. افریدو او شنوارو د هغۀ په لاره کښې لویې لویې ونې وغورځولې، د غرونو په سوکو ورته کښیناستل او د هغه په فوځونو باندې ئې حملې شروع کړې. لارې ئې ورته بالکل وراني کړې. کله به د هغۀ د فوځ په شا راپریوتل او کله به ئې د فوځ په هراول باندې ډزې وکړې. نادر شاه هرڅومره ډیر کوشش وکړو چې زر د دې قبائلو د غرونو نه وځم مګر دوئ قریباً یوه میاشت پورې هغه وړاندې کیدو ته پرې نۀ ښودو. بیشانه ډیر سپاهیان ئې ترینه قتل کړل او ډیر مال ئې ترینه لوټ کړو. اخر د یوې میاشتې نه پس نادر شاه له عقل ورغلو او د هغوي شرطونه ئې ومنل. د هغې نه

پس ډیر افریدي او شنواري هم د هغهٔ په فوځ کښې شامل شول. او هرڅومره سړي ئ چې ترینه وژلي وو د هغې په دوه هومره د هغهٔ فوځ کښې شریک شول. په دې معرکه کښې غلجو او ابدالیانو دومره بهادري وکړه او داسې جنګونه ئ د نادر شاه دپاره وکړل او په داسې اخلاص باندې ئ د نادر شاه خدمت وکړو چې د هغهٔ مینه او محبت پښتنو سره عام طور او ابدالیانو او غلجو سره خاص طور ډیره زیاته شوه. په هره معرکه کښې به نادر شاه بیا پښتنو ته د ډیرې ذمه وارۍ او د اعتبار ځاے سپرد کولو. او په هره جرګه او مشوره کښې به هغهٔ د نور محمد خان او د هغهٔ د ملګرو رائ له ترجیح ورکوله. د هغهٔ په ټول لښکر کښې پښتانهٔ زیات با اعتباره شول او د نادر شاه حکم به ئ بې چون و چرا منلو. هغهٔ هم د پښتنو دومره زیات عزت شروع کړو چې ایراني فوځ له هم په دې حسد ورغے. د هندوستان د حملې نه واپس نادر شاه د ډیر لوے مال سره راروان وهٔ نو بیا هم افریدو دا شان تکلیف هغهٔ له ورکړو چې کهٔ چرې ابدالیان او غلجیان نهٔ وے نو نادر شاه به د خیبر په دره کښې بالکل تباه شوے وهٔ.

فیریر د پښتنو د تاریخ History of Afghans په اوویشتم مخ باندې وائي د دې ایراني فاتح چالت په دې ورځو کښې دومره خطرناک شو چې د یو ډیر لوے رقم په ادائیګۍ باندې ئ ځان د هغوي نه خلاص کړو. د ابدالیانو او غلجیانو نادر شاه سره دومره محبت وهٔ او هغوي د هغهٔ دومره خدمتونه وکړل چې نادر شاه به هغوي پخپل فوځ هم غوره کول. ایرانیان په دې باندې دومره خفه شول چې هرکله بادشاه په کال 1747ء کښې قتل شو نو هغوي په پښتنو باندې حمله وکړه او چونکې پښتانهٔ په نسبت د ایرانیانو په شمار ډیر لږ وو. هغوي سمدستي خپل ملک ته د خپل سالار نور محمد خان د مشرۍ لاندې واپس راغلل.

نادر شاه چې د خیبر د غرونو نه ووتلو نو د مغلو فوځ له ئ د پیښور په مقام شکست ورکړو او په پیښور او لاهور باندې ئ حمله وکړه. بیا هغې نه پس د دریائے ستلج نه پورې وتلو. په دیارلسمه فروری 1739ء کښې د کرنال په مقام دهٔ د مغلو فوځ له شکست ورکړو او بیا د دهلي په ښار ورننوتلو. د هغهٔ د رسیدو نه یوه ورځ پس په دهلي کښې غلط خبر خور شو چې نادر شاه قتل شو. د ښار خلقو د هغهٔ په سپاهیانو باندې توره راکښیښودې او ډیر فوځ ئ ورله قتل کړو. نادر شاه د دې غلط خبر تردید دپاره ځان خلقو ته ښکاره کړو مګر خلقو په هغهٔ باندې هم حمله وکړه. پس د دې نه هغهٔ د قتل عام حکم ورکړو او تر اتو ګینټو پورې په دهلي کښې د وینو لښتي وبهیدل. نادر شاه اتهٔ پنځوس ورځې په دهلي کښې پاتې شو او بیشماره خزانې، جواهرات او سرهٔ زر چې د هغې قیمت د درې نیم کروړو پونډونو نه تر اوو کروړو پورې وهٔ او مشهور تخت طاؤس چې د شاه جهان بادشاه په حکم جوړ شوے وهٔ ځان سره واخستو او خراسان طرف ته روان شو. د اټک د پورې وتو نه پس لکه چې ځنګه وړومبے ذکر شوے دے افریدو هغهٔ ته لار ونیوله او د هغوي نه ئ ځان په لس لکه روپۍ

خلاص کړو. د پیښور نه نادر شاه د کابل په لاره قندهار ته لاړو او څۀ موده پس ئ په سندھ، بخارا او د خوارزم په علاقو باندې خپله باجگزاري تسلیم کړه.

پس د دې نه هغه مشهد ته راغے او دغه ښار ئ خپله دارالخلافه کړه. څۀ موده پس هغه د خپل زوي رضا قلي برخلاف بدگمانه شو او د هغۀ ستر گې ئ وویستې. بیا هغه په ایشیائے کوچک کښې د ترکو برخلاف لښکر کشي وکړه او هغوي له ئ شکست ورکړو په اخري عمر کښې نادر شاه د هر چا برخلاف بدگمانه شو او ظلمونه ئ راواخستل. د هغۀ د شک وۀ چې زما فوځ زما قتل پسې دے. چنانچه خفیه سازشونه ئ وکړل چې خپل ټول ایراني فوځ قلار کړم. په نهم جون 1747ء کښې پخپله دارالخلافه کښې د خپلو امیرانو او وزیرانو د لاسه قتل شو.

## د درانو د حکومت ابتداء

د ابدالیانو او د غلجو کوم لس سرداران چې د پښتنو فوځ سره د نادر شاه د طرف نه تللي وو په هغوي کښې احمد خا ن سدوزے هم یو سردار وۀ. دې د هغه سدوزو د اولاد نه وۀ چې شاه عباس د خپلې قبیلې مشر کړے وۀ. بل سردار په دې لسو تنو کښې حاجي جمال خان محمد زے وۀ دې د هغې محمد د اولاد نه وۀ چې کوم "سدو" سره شاه عباس اعظم د بارکزو د قبیلې مشر کړے وۀ. فیریر په خپل کتاب د پښتنو تاریخ په اتویشتم مخ کښې لیکي چې دې سردارانو ته تجربې دا ثابته کړه چې زمونږ د محکومیت او د غلامی اصلي وجه په حقیقت کښې زمونږ بې اتفاقی او کورنی جگړې دي. نه چې د دشمن او د حمله آور قومونو طاقت او زور. په دې وجه هغوي پخپله قرآن او قسم وکړو چې مونږ به پس له دې نه په اتفاق او مینه محبت د یو بل سره وسیږو. د دې نه پس هغوي خپله جرگه د یوې میاشتې دپاره خوره کړه. د دې غرض دپاره چې په دې وخت کښې مونږ د ځان دپاره قبائلي قانون او د پښتنو رواجونه په خپل ځان باندې د حکومت کولو په غرض جوړ کړو. دا جرگه هغوي د هغې حملې نه یو څو ورځې پس وکړه چې کومه ایرانیانو د نادر شاه د مرگ نه پس په هغوي کړې وه او ډیر سرې ئ ترینه وژلي وو.

څۀ موده پس بیا هغوي یوه بله جرگه وکړه او قصد ئ وکړو چې اوس بیا د ایران غلامی قبلولو ته تیار نۀ یو. یو ځل بیا هغوي د خپلې ازادی او د تیر شوي جاه و جلال، عزت، خوشحالی او خودمختاری خوبونه لیدل. او اراده ئ وکړه چې د پښتنو په فوځ کښې بیا د وروروليی اتفاق او تنظیم جذبات پیدا کړو. د نادر شاه د لاس نه جوړ شوے فوځ ټول په سازوسامان باندې پُور هغوي سره موجود وۀ. چونکې د نادر شاه یو قابل جانشین هم په ایران کښې موجود نۀ وۀ نو هغوي ته دا موقع د خپل غرض حاصلولو دپاره ډیره مناسب ښکاریده.

د نادر شاه په ژوند کښې احمد خان سدوزي په خپل قابليت، لياقت او جرأت پخپل قوم کښې دومره اثر پيدا کړے وۀ او د نادر شاه په هر يو وخت خدمت کښې هغۀ ځان داسې د هغۀ مخلص کړے وۀ چې هر چرته چې د ذمه وارۍ يو کار يا به يو بل څۀ غټ مهم وۀ نو په هغې باندې به هم احمد خان ليږلے شو او هميش به هغه کامياب راتلو. اګرچې د هغۀ عمر کم وۀ مګر د خپل لوظ او اقرار پابند وۀ. پخپله وينا کښې صادق ايماندار او په چال چلن کښې ډير نيک پارسا سړے وۀ. په قومي جرګو کښې د هغۀ خبرې درنې او سنجيده وے او په مشوره کښې د هغۀ رائ ډيره پخه وه. دې سره د پښتنو چې هر قسم رواجونه، صفتونه او د هغوي عيبونه وو په هغې باندې ښۀ واقف وۀ. هغۀ ډير زر د خپل ارتِ لاس په سبب، عام طور په ټولو پښتنو کښې او خاص طور په سدوزو کښې ډير رسوخ او اثر پيدے کړے وۀ. هر کله چې نادر شاه قتل شو نو احمد خان د هغۀ بدل اخستو دپاره سره د خپلو سدوزو او د اُزبکو د لښکر د باغيانو په کيمپ باندې حمله وکړه. مګر هر کله چې هغۀ ته معلومه شوه چې په دې سازش کښې د ايراني فوځ ټول مشران شامل دي نو د مشهد نه واپس راووتو. خلق وائي چې د هغه ځاے نه احمد خان ځان سره د کوه نور بيش بها لعل هم راوړو.

د پښتنو په منځ کښې چې کومې پورته ذکر شوې جرګې د نادر شاه د مرګ نه پس د خپل قوم د ازادۍ په حقله کيدے نو په هغې کښې هم احمد خان لويه حصه اخستې وه. د ټولو نه وړومبے څۀ وخت چې د پښتنو مشران د ايران نه واپس شول او په قندهار ئ جرګه وکړه نو په اتفاق سره هغوي د فوځ سپه سالارۍ د نور محمد خان عليزي نه واخسته ځکه چې هغه نادر شاه مقرر کړے وۀ او د يو غير قوم د بادشاه د ملازم د لاندې هغوي کار کول مناسب نۀ ګڼل. د دې نه پس دې مشرانو د قندهار د ټولې علاقې يوه لويه جرګه چې په هغې کښې ابداليان، غلجي، بلوچ او قزلباش شامل وو راټوله کړه او په دې معامله ئ غور وکړو چې په کومه طريقه به بيا ازادي حاصلوؤ. په دې خو ټولو اتفاق وکړو چې د ايران حکومت سره په هر صورت تعلق پريکول پکار دي. ځکه چې ايرانيان او پښتانۀ په يو بل باندې حکومت نشي کولے. بيا ئ دا فيصله وکړه چې مونږ له خپل يو بادشاه چې د هغۀ په لاس ټول انتظامي او فوځي اختيارات وي منتخب کول پکار دي. په دومره قبيلو کښې د بادشاه انتخاب کول د پښتنو دپاره څۀ اسان کار نه وۀ. هرې يوې قبيلې د تخت د حاصلولو دپاره خپلې خپلې دعوې پيش کړې او ډير بحث مباحثې وشوې.

مؤرخين وائي چې قريباً اتۀ جرګې د دې معاملې د فيصله کولو دپاره راغونډې شوې مګر هيڅ فيصله ونۀ شوه. مؤرخين وائي چې د احمد خان سدوزي ټول ټبر په هرات کښې وسيدو. او په قندهار کښې د هغۀ د نوم پيش کولو دپاره هم څوک نۀ وو. په دې اتو وارو جرګو کښې احمد خان موجود وۀ او په ډير غور او فکر سره ئ د هرې قبيلې د مشر تقرير د

خپلې خپلې دعوې په حق کښې اوريدلے وۀ. مګر هغۀ پخپله د خلې نه يو لفظ هم د خپل ځان دپاره په دې ټولو اجلاسونو کښې ونۀ ښکلو. په نهمه جرګه کښې د حاجي جمال خان نوم چې د محمد زو مشر وۀ تجويز شو او ډير خلق د هغۀ په طرف وو مګر ځنې طاقتور او قابل قدر خلق د هغۀ برخلاف وو. په دې وجه د هغۀ نوم پاتې شو. وائي چې د دې بحث مباحثو په دوران کښې يو فقير چې په دې ټولو جرګو کښې موجود وۀ او د احمد خان ډيره درنه او سنجيده رويه ئې ښه په غور سره ليدلې وه او د هغۀ نه متاثر شوے وۀ راپاڅيدو او وې وئيل چې د الله پاک دپاره دا جرګې خورې کړئ او نورې جګړې مۀ کوئ دا څۀ شور او غوغا مو جوړه کړې ده. خدائے تعالیٰ احمد خان په تاسو کښې يو ډير لوے دروند سړے او د عزت خاوند پيدا کړے دے هغه په ټولو پښتنو کښې په اصل هم ښۀ دے او قابل هم دے. د دې دپاره د خدائے کار مۀ ورانوئ کۀ نۀ وي نو د خدائے تعالیٰ قهر به په تاسو نازل شي. دا الفاظ هغه درويش ووئيل او د اوربشو يوه قوده ئې د خوا پټې نه راپريکړه او سمدستي ئې د احمد خان د سر نه تاؤ کړه او هغۀ ته ئې ووئيل چې خدائے تعالیٰ دې دا ستا تاج کړي. په دې باندې حاجي جمال خان او د نورو قبيلو ټولو سردارانو خپل خپل نومونه واپس کړل. او هر يو د فصيح او بليغ تقرير نه پس د احمد خان په لاس بيعت وکړو. احمد خان د ټول قوم په مخکښې په بې غرضی د حکومت کولو او د تمام قوم د مشترکې ښيګړې لټولو اقرار وکړو.

په اکتوبر 1747ء کښې د قندهار په يو جماعت کښې د احمد خان باقاعده تاجپوشي وشوه او د شاه لقب ئې اختيار کړو. دغه وخت د هغۀ عمر صرف درويشت کاله وۀ او د هغۀ د تاجپوشی رسم ډير ساده وۀ. يو ډير لوے عالم او متقي ملا د هغۀ په سر باندې د غنمو يو څو دانې وويشتلې يعنې وې نوستلې او بيا ئې پښتنو ته ووئيل چې دې خدائے تعالیٰ او د قام د طرف نه مقرر شوے بادشاه دے په تاسو باندې د دۀ اطاعت لازم دے. د غنمو د نوستلو مطلب دا وۀ چې د دې بادشاه د حکومت زمانه کښې خدائے تعالیٰ په ملک کښې خوشحالي او ترقي زياته کړي.

لا د احمد شاه د تاجپوشي خوشحالي خلقو کولې چې قندهار ته خبر راورسيدو چې د نادر شاه افسر محصولات د سندهـ او د پنجاب نه د ديارلس لکه او شپيتو زرو پونډونو او نور مال دولت چې کوم هغۀ ته د علاقه سندهـ او د پنجاب نه جمع کړي وو د قندهار په لاره راروان دے. د نادر شاه د مرګ نه پس د هغۀ هيڅوک جائز وارث لا د ايران په تخت ناست نۀ وۀ او په ملک کښې هم هغه شان اړے ګړے او خانه جنګي جاري وه. احمد شاه ته هم د فوځ د تنخواه او د نورو ملکي معاملاتو د انتظام دپاره د روپو ډير سخت ضرورت وۀ هغۀ دا غيبي امداد وګڼلو. دا ټول دولت هغۀ واخستلو او د ملک او قوم په ښيګړه ئې راوستو.

ځنې خلق وائي چې احمد شاه د څو کنو د ميان صاحب مريد وۀ. د بادشاه کيدو نه څۀ

موده پس میان صاحب په احمد شاه باندې حضور شو او ورته ئ ووئیل چې تهٔ د خپلې ټولې قبیلې نوم د خپلې شاهي درجې مناسب بدل کړه او خپل ځان له در دران (مرغلرو کښې ښه مرغلره) او خپلې قبیلې له دراني نوم کیده. د دې کبله هغهٔ د ابدالي قبیلې نوم دراني کښیښودو. او ځان له ئ در دران لقب اختیار کړو. دغه شان د درانو قبیله جوړه شوه او د پښتنو د قوم په تاریخ کښې راووتل.

احمد شاه درانے چې تخت نشین شو نو د هغهٔ په مخکښې دوه لوے مهمونه پراتهٔ وو یو خو د پښتنو خورې ورې قبیلې د یو قامولي په پړي راتړل وو او په هغوي کښې مشترک قومي جذبات پیدا کول وو دویم د هغهٔ په ذمه د خپل حکومت استحکام وهٔ. څرنګې هغه د پښتنو د خوئ بوئ او د هغوي د رواجونو او د قاعدو نه ډیر ښهٔ واقف وهٔ او خدائے تعالیٰ ورله یو ډیر صاف دماغ ورکړے وهٔ هغهٔ د خپل حکومت دا طریقه اختیار کړه چې د ټولو قبیلو سرداران ئ د حکومت په تمامي معاملاتو کښې ځان سره شامل کړل. هغهٔ ته دا معلومه وه چې ترڅو پورې د پښتنو هره یوه قبیله د ازادئ او خودمختارئ په خوړو کښې ما سره شریکه نشي او ترڅو پورې چې د حکومت په هره یوه شعبه کښې زهٔ هغوي له برخه ور نهٔ کړم تر هغې پورې په هغوي کښې د قامولي جذبه او د قومي ژوندون پیدا کول مشکل کار دے. په دې سبب هغهٔ د حکومت ټول اختیارات ځان له قبضه نهٔ کړل بلکې د هرې قبیلې حکومت ئ هم هغې قبیلې له ورکړو او هغوي ته ئ د خپلو مشرانو مقررولو واک اختیار حواله کړو. په لویو لویو معاملو کښې لکه نورو قومونو سره جنګ یا صلح یا په ټول ملک کښې د یو خاص نظام حکومت یا د آئین جاري کول یا د ملک په خلقو ټیکسونه لګول، په دې ټولو معاملو کښې به هغهٔ د قبائلو د مشرانو نه صلاح اخسته. په هره قبیله باندې هغهٔ د جنګ دپاره شاهي فوځ ته د لښکر ورکولو تعداد مقرر کړے وهٔ. د احمد شاه لوے قابلیت دا وهٔ چې هغهٔ خپل هر کار له قومي رنګ ورکولو. هغهٔ ځان ته پښتون بادشاه وئیل او وئیل به ئ چې زهٔ د پښتنو قومیت او زور مضبوطوم او په ملک کښې د پښتنو خیالات طریقې او تهذیب خوروم. په هر کار کښې به هغهٔ پښتنو ته د پښتو د جذباتو اپیل کولو او په دې سبب هغهٔ داسې یوې معاملې ته هم لاس نهٔ اچولو چې د ټولو پښتنو مشترکه فائده ئ مدنظر نهٔ وه ساتلې.

د دې اصولو د لاندې هغهٔ د پښتنو د لویو لویو قبیلو د نهو مشرانو یو وزارت قائم کړو او په ټولو معاملو کښې به ئ د هغوي په جرګه فیصله کوله. د جمهوریت هم دغه اصول وو چې په هغو باندې هغهٔ تر اخره پورې عمل کولو او هم په دې سبب هغه کامیاب وهٔ. د ټول قوم او د سردارانو ژبه په جرګو کښې او بهر پښتو وه فیصلې به د پښتو په رواج کیدے او هیڅ کار به هم د قبائلو د مشرانو د منظورئ نه بغیر نهٔ کیدلو.

د تخت نشین کیدو سره سم هغهٔ د قامونو یوه لویه جرګه راوبلله او د هغه ټولو علاقو

ئ پخپل سلطنت کښې د شاملولو تجويز پيش کړو چې په کومو علاقو کښې پښتانۀ وسيدل.
غزني، کابل او نورې ډيرې علاقې چې د پښتنو وې او هم هغه شان د ايران زير حکومت وے.
پس هغۀ ووئيل چې دا علاقې هم د پښتنو په دې حکومت کښې شاملول ضروري دي او د
ايران د غلامۍ نه د هغوي خلاصول مناسب دي. ټولو د دې تجويز سره اتفاق وکړو او د
کابل او غزني د علاقو د ازادولو تيارئ ئ وکړې. د هرات تسخير ئ بل مناسب وخت ته
پريښودو. په دې ورځو کښې د کابل ګورنر هم هغه ناصر خان وۀ چې د نادر شاه د حملې په
وخت کښې د مغلو د طرف نه د دغې علاقې حاکم وۀ. او د نادر شاه له لاسه پيښور ته
تښتيدلے وۀ. هر کله چې نادر شاه هغۀ له په پيښور باندې شکست ورکړو نو هغه ئ بيا د
کابل، غزني او د پيښور حاکم د خپل طرفه مقرر کړو. ناصر خان احمد شاه ته سوال جواب
وليږلو چې چونکې دا درې واړه علاقې د پښتنو دي په دې وجه دا ماته پرېږده. ناصر خان
انکار وکړو. دا وخت د کابل په بالا حصار کښې دولس زره قزلباش چې نادر شاه د ځان سره
راوستي وو پراتۀ وو. دا قزلباش حقيقت کښې د هغه اوو ترکو قبائلو اولاد وۀ چې چا شاه
اسماعيل سره (چې په ايران کښې د صفوي خاندان بادشاهانو باني وۀ) شيعه مذهب قبول
کړے وۀ. دې بادشاه هغوي له د نورو ايرانيانو د پيژندګلو دپاره سرې ټوپۍ ورکړې وے له
دې کبله د هغوي نوم قزل باش يعنې د سرو سرونو خاوندان مشهور شو. دا قزلباش ناصر خان
د جنګ دپاره تيار کړل او د نورو هزارو او اُزبکو د فوځونو برتي کولو کوشش ئ وکړو مګر
هزاره او اُزبکو د احمد شاه برخلاف د جنګ کولو نه انکار وکړو. احمد شاه خپلو فوځونو
سره د غزنې په طرف روان شو او دا علاقه ئ بې ډزه بې ډوزه واخسته. بيا هغه قزلباشو له
قبائلي خود اختياري ورکړه او په حکومت کښې ئ د عهدو ورکولو هم ورسره اقرار وکړو.
ناصر خان د يو معمولي مقابلې نه پس پيښور ته وتښتيدو او احمد شاه په کابل هم قبضه
وکړه. د کابل د اخستو نه پس هغه د ناصر خان په تعاقب پسې بيا پيښور ته راغے او هله پسته
صبر شو چې هغه ئ د اټک نه پورې کړو.

د ناصر خان د ايستلو نه پس بيا هغۀ هر ځاے کښې چې پښتانۀ قبائل وسيدل هغه
ټولې علاقې ئ پخپل حکومت کښې شاملې کړې او ټولو له ئ هم هغه کورنۍ خودمختاري
ورکړه چې کوم هغۀ نورو قبيلو له د دې نه اول ورکړې وه. په دې شان په پښتنو کښې هم
احمد شاه اول هغه سړے وۀ چې ټول قام ئ د عزيزولۍ په رنګ کښې متحد او متفق کړو.
دې کښې شک نشته چې ورومبے هم د پښتنو ځنې ځنې قبيلو د افغانستان په بعضې حصو او
هندوستان باندې هم حکومت کړے دے مګر هغه د پښتون قام د عزيزولۍ حکومت نۀ وۀ. د
قامولۍ کوم خيال چې احمد شاه د پښتنو په ټولو قبيلو کښې سراسر پيدا کړو او په کومه
طريقه چې هغۀ د پښتنو ټپې په يو مشترک خيال باندې را يو ځاے کړې هغه لا تراوسه پورې

بل پښتون بادشاه نهٔ وو کړي. دې کښې شک نشته چې میرویس غلجي په پښتنو کښې د ازادۍ او خودمختارۍ خیال پیدا کړے وهٔ مګر هغهٔ پخپل ژوندون کښې د ټولو پښتنو په راټولولو کښې او په یو مشترک نظام عمل باندې د هغوي په راجمع کولو کښې کامیاب شوے نهٔ وهٔ مګر احمد شاه دراني د یوسفزو او د هشنغر د محمدزو او د مومندو نه چې راواخلې نو د سیستان د پنتي او کاکړو پښتنو پورې ټولې قبیلې په یو غرض او په یو مقصد باندې راټولې کړې. غرض دا چې پښتنو د دې خور وور کنډک په شپون کیدلو کښې صرف یو هغه کامیاب شوے وهٔ.

ایلفنسټن وائي چې "د احمد شاه سلوک او مینه محبت د پښتنو هرې قبیلې سره دومره ډیر زیات وهٔ چې کهٔ چرې یوې قبیلې به د هغهٔ برخلاف بغاوت هم وکړو نو هغهٔ به همیش هغوي سره د جنګ کولو نه ګریز کولو. چې هسې نه چې د پښتنو ځان او مال ته نقصان ورسي. یوسفزو، ترکلانو، ګګیانو، اتمان خیلو، بر مومندو، د هشنغر محمدزو، خلیلو، مومندو، افریدو، شینوارو، اورکزو، داؤدزو، خټکو، بنګښو ته به هغهٔ بر دراني وئیل او هم دومره مینه به ئې هغوي سره کوله لکه څرنګه چې به ئې خپلې قبیلې سره کوله."

د پیښور او د اټک د اخستو نه پس هغهٔ خپل فوځ کښې د پیښور د علاقې ډیر پښتانهٔ برتي کړل او په هندوستان باندې ئې د حملې کولو تیاري وکړه. د چچ د اخستو نه پس احمد شاه په منځ د دسمبر 1747ء د پیښور نه د لاهور په طرف روان شو. حیات الله خان(۱) د ذکریا خان زوے اګرچې د مغل بادشاه دهلي د طرف نه د پنجاب ګورنر وهٔ مګر هغه په زړهٔ کښې د شهنشاه دهلي نه ډیر ناراض وهٔ. هر کله چې هغه د احمد شاه په نیت پوهه شو نو هغهٔ له ئې په پنجاب باندې د پیش قدمۍ کولو دعوت ورکړو او د مغلو خلاف ئې هغهٔ سره د مرستې وعده وکړه. احمد شاه په اتمه جنورۍ 1748ء شاهدرې ته ورسیدو.

---

(۱) ذکریا خان د عبدالصمد خان زوے وهٔ عبدالصمد خان د فرخ سیر شهنشاه دهلي د طرف نه د پنجاب ګورنر مقرر شوے وهٔ. عبدالصمد خان په کال 1716ء کښې بنده نومے د سکهانو مشر له چې د مغلو نه ئې د بغاوت کولو نه پس بیشانه ډیر مسلمانان او هندوان قتل کړي وو شکست ورکړے وهٔ. عبدالصمد خان د اصل نه توراني سردار وهٔ او د ښهٔ فوځي قابلیت خاوند وهٔ. په هندوستان باندې د احمد شاه د وړومبۍ حملې په وخت کښې حیات الله خان المعروف شاه نواز خان د ذکریا خان زوے د پنجاب ګورنر وهٔ. حیات الله خان د ذکریا خان کشر زوے وهٔ. د حیات الله خان نه وړومبے یحییٰ خان د هغهٔ مشر ورور د پنجاب ګورنر وهٔ ولې هغه خپل ورور په زور باندې لرې کړو او ځان له ئې ګورنري حاصله کړه. د نادر شاه د حملې په وخت کښې حیات الله خان د هغهٔ اطاعت قبول کړو او نادر شاه هغهٔ له د شاه نواز خطاب ورکړو. د نادر شاه د مرګ نه پس هغه بیا د مغلو اطاعت قبول کړو.

ولې په دې منځ کښې مغل وزير اعظم قمر الدين خان حيات الله خان ته ډېر د خوشامندو نا
ډک خطونه وليکل او ورته ئ د احمد شاه د مقابلې دپاره بيشانه ډېر ننګونه او غيرتونه
واړول. حيات الله خان المعروف شاه نواز خان اخر په دې خطونو رضا شو او د احمد شاه
مقابلې ته ودريدو. احمد شاه هم د هغهٔ د رضا کولو ډېر وس وکړو خو ناکام شو.

احمد شاه په لسمه جنورى د راوي سيند نه پورې وتلو او په شالامار باغ کښې ديره
شو. په يولسمه جنورى 1748ء د پښتنو او د مغلو ترمنځه جنګ وشو. مغلو شکست
وخوړو او حيات الله خان دهلي ته وتښتيدو. د حيات الله خان ټوله خزانه مال او دولت، ډيرې
توپې او سامان جنګ لکه هاتيان، اوښان، اسونه د احمد شاه په لاس راغلل. او دغه شان د
هغهٔ فوځي طاقت نور هم زيات شو. احمد شاه قريباً يوه مياشت په لاهور کښې په دهلي باندې
د پيش قدمى کولو دپاره تيارى وکړې. جمعه خان د قصور ئ په لاهور کښې خپل ګورنر
کړو او پخپله په نولسمه فرورى دهلي ته روان شو. شهنشاه دهلي چې د احمد شاه د کاميابى
نه خبر شو نو د هغهٔ د مقابلې دپاره ئ د دوؤ لکو سړو يو عظيم الشان لښکر تيار کړو او وزير
اعظم قمر الدين خان ئ د دې سپه سالار کړو. په پنځويشتمه فرورى د مغلو فوځ د سرهند
خواوشا ته راورسيدو مګر هغوي ته معلومه شوه چې علي محمد خان ګورنر سرهند چې د
پښتون قام سړے وۀ قلعه پريښودې ده او تللے دے. ځکه چې هغه خپل پښتون ورور احمد
شاه سره جنګ کول نۀ غوښتل. مغلو سرهند د خپلو جنګي تيارو مرکز کړو او هرڅومره
فالتو اسلحه چې هغوي سره وه هغه ئ سرهند کښې جمع کړه او يو زر سوارۀ او پياده ئ د
قلعې د حفاظت دپاره پريښودل.

مغل د ستلج نه د لدهيانې د ګودر په ځاے د ماچي واړې په لار پورې وتل او د
لدهيانې ګودر ئ خوشے پريښودو. هغوئ خپل ځان د احمد شاه د لښکر د نقل و حرکت او
د ارادو نه هم بې خبره وساتلو. د دې په مقابله کښې احمد شاه خپل فوځونه چې د جوش نه
ډک وو ډير په هوښيارتيا او په ډيره تادى سره د يو ځاے نه بل ځاے ته بدلول رابدلول. چې
دشمن ته د هغهٔ د مقصد د پته لګولو موقع په لاس ورنۀ شي.

نتيجه دا شوه چې احمد شاه په اول مارچ 1748ء د ستلج نه بې مقابلې د لدهيانې په
ګودر پورې وتو او شپه په شپه ئ څلويښت ميله لار په تيارې کښې ووهله او د مغلو فوځ لا
په ماچيواړه کښې پروت وۀ چې دۀ د دويم مارچ 1748ء سحر سحر کښې د سرهند په قلعه
باندې قبضه وکړه.

دې خبر د مغلو په لښکر کښې يو هيبت پيدا کړو او هغوي سخت خوفزده شول. د
ماچيواړې نه اوس هغوي د مانو پوره په طرف چې د سرهند نه لس ميله قطب په قبله پروت
دے روان شول په هغه ځاے کښې هغوي د پښتنو لښکر ته په مخکښې پريوتل. دواړو

فوځونو د خپل خپل ځان نه چاپیره خندقونه وکنستل. ډیرې معرکې د دواړو لښکرو په منځ کښې وشوې. خو لویه مقابله یوه هم ونۀ شوه. اخر په یولسم مارچ قمر الدین خان د پښتنو په لښکر باندې د عامې حملې کولو فیصله وکړه مګر هغه لا د حملې تیاري کوله چې په دې منځ کښې هغه د توپې په ګولۍ ولګیدو. هغه لا مړ نۀ وۀ چې خپل زوي معین الملک المعروف میر منو ته ئ اواز وکړو او ورته ئ ووئیل زما زویه زۀ خو اوس ختم شو او زما کار خلاص شو ولې د شهنشاه کار لا نیمګړے پروت دے نو اګاهو د دي نه چې زما د مرګ خبر خور شي سمدستي په اس سور شه او حمله وکړه پس د هغې نه زما فکر کوه. د دې وینا سره قمر الدین ساه ورکړه معین الملک د خپل پلار په هاتي سور شو جنډه ئ وچته کړه او حمله ئ شروع کړه. د مغلو د فوځ په قلب کښې شهزاده احمد د شهنشاه دهلي خپل زوے وۀ اومعین الملک د ټولو نه مخکښې وۀ. صفدر جنګ په ښی او ایشوري سنګ په چپه غاړه وۀ. دې خوا احمد شاه پخپله د خپل فوځ کمان په لاس کښې اخستے وۀ. او په ډیر قابلیت سره ئ د مغلو مقابله کوله. د مغلو د لښکر سره هغۀ په نوي طرز باندې جنګ وکړو. د هغوي د لښکر هر لوري ته به هغۀ یو یو زر سوارۀ رامخکښې کول بیا به هغوي په ډیرې سختۍ سره پخپله خپله غاړه د ټوپکو باړونه چلول او د څۀ وخت د جنګ نه پس به ورو ورو پشا کیدل او نوي تازه دم دستو ته به ئ ځاے پریښودو.

په دي طریقه احمد شاه ډیر لږ فوځ په ډیر استقامت او حوصلې سره د خپل ځان نه په ډیر لوي فوځ کامیابې حملې وکړي په دې چل د مغلو د لښکر چپ طرف مات شو. او ایشوري سنګ د لاندې چې هرځومره راجپوت چې وو هغوي ټول کوتره شول. ولې ډیر سخت جنګ د فوځ په قلب کښې جاري وۀ معین الملک هم په ګولۍ ګریدلې وۀ. ورور ئ په ښه زخمي شوے وۀ. او ادینه بیګ دوه ځایه په ګولۍ لګیدلے وۀ د مغلو لوے افسران په جنګ کښې مړۀ شوي وو مګر عین په دې وخت د پښتنو په میګزین اور ولګیدو او ټول والوتلو. یو زر پښتانۀ پکښې مړۀ شول. عین په دې ساعت معین الملک سخته حمله وکړه او صفدر جنګ هم د هغۀ کومک ته راورسیدو. د پښتنو پښې سستې شوې او میدان ئ پریښودو مګر ټوله ورځ جنګ دومره سخت شوے وۀ او د پښتنو د ځوان مردۍ دومره سیکه په مغلو ناسته وه چې هغوي د تعاقب هډو خیال ونۀ کړو او پنځو ورځو پورې د کیمپ نه را ونۀ وتل. د مغلو فوځ د لسو پنځلسو ورځو د خوشحالۍ نه پس واپس دهلي ته روان شو. او احمد شاه خپل ملک ته واپس شو. شهنشاه دهلي میر منو د پنجاب ګورنر مقرر کړو. په واپسۍ کښې احمد شاه د ډیره غازي خان ډیره اسماعیل خان شکار پور ملتان او د ملتان په علاقو کښې خپل حاکمان مقرر کړل او په ژمي کښې قندهار ته ورسیدو.

د کال 1749ء په سپرلي کښې هغۀ په هرات باندې د فوځ کشۍ تیاري راواخستو.

هرات د دراني قبيلې مرکز وُ او نادر شاه دا علاقه هم د درانو د لاسه اخستې وه. مګر ورومبے د دې نه چې د دې مهم دپاره ټول انتظام پوره شوې وے نور محمد خان عليزي سره د يو څو نورو سردارانو د هغهٔ د قتل سازش وکړو. نور محمد خان يو ځل د ټولو پښتنو د فوځ سپه سالاري کړې وه او په دې سبب هغه د احمد شاه د قابليت د نوم او د روز افزون طاقت په وجه هغهٔ سره حسد کولو.

په پښتنو کښې دا يو زوړ خوئ پروت دے چې څهٔ وخت د هغوي يو مشر د خپل قابليت او قربانۍ په وجه په قوم کښې هردلعزيزي حاصله کړي نو د ځنې مشرانو په زړونو کښې د هغهٔ برخلاف بغض او حسد راپيدا شي. او د هغهٔ د راغورځولو کوشش کوي. هم دغه سبب وُ چې په دې سازش کښې نور محمد خان سره د ډيرو قبيلو بعضې مشران هم شامل وو. ولې خدائے تعالیٰ کول چې د هغوي تجويزونه په عمل کښې نهٔ وو راغلي. چې د هغوي راز ښکاره شو او نور محمد خان سره د خپلو ملګرو ګرفتار شو. دې نور محمد خان ته احمد شاه د مير خطاب هم ورکړے وُ مګر چونکې د هغهٔ جرم ناقابل معافي وُ په دې وجه هغهٔ او د ملګرو ته د قتل سزا ورکړې شوه. د احمد شاه په دوران حکومت کښې دا ورومبني پښتانهٔ وو چې د هغهٔ په حکم قتل شو.

پس د دې نه هغهٔ د پنځويشت زره فوځ سره په هرات پيش قدمي وکړه. په هرات کښې د نادر شاه د نمسي شاه رخ مرزا د طرف نه يو عرب سردار امير خان چې د نادر شاه په زمانه کښې د توپخانې سردار وُ ګورنر وُ. د نادر شاه د مرګ او بيا د ډيرو خانه جنګو نه پس شاه رخ د نادر شاه نمسے په مشهد کښې تخت نشين شوے وُ. سردار امير خان په ميدان جنګ کښې د احمد شاه د مقابلې طاقت نهٔ لرلو. د دې کبله هغهٔ ځان سره د يو څو چيده چيده خلقو په قلعه کښې بند کړو او شاه رخ مرزا ته ئې د امداد دپاره وليکل. د هرات په ښار کښې هم هغهٔ د خوردونوش سامان وسله او روپۍ تقسيم کړې. احمد شاه د هرات محاصره يو څو مياشتې وکړه او د هغهٔ کم زيات شل معرکې د امير خان فوځ سره وشوې مګر د شاه رخ مرزا د طرف نه هيڅ امداد راونهٔ رسيدو او د هغهٔ هرات ښار فتح شو. امير خان چې د ښار د فتح نه خبر شو نو سره د خپله فوځه د قلعه نه بهر ته راووتو. او په پښتنو ئې چپاؤ وکړو مګر په جنګ کښې قتل شو او د هرات قلعه هم د پښتنو په لاس کښې راغله. د هرات د فتح کولو نه پس هغه بيا په مشهد ورغے. شاه رخ مرزا ته په مشهد کښې د ډيرې مودې نه کورنۍ جګړې پيښې وے او په ايرانيانو کښې هر چا د هغهٔ نه د مشهد د اخستو کوشش کولو. د شاه رخ سپه سالار يوسف خان چې يو ډير قابل او لائق جنګيالے وُ هغهٔ د هغوي څهٔ مودې پورې خو ښه مقابله وکړه مګر اخر په يو جنګ کښې مړ شو او ميرعالم نومے د سيستان يو سردار او جعفر خان چې د کردو سردار وُ هغوي په مشهد حمله وکړه او شاه رخ

ۍ قید کړو مګر څهٔ موده پس د هغوي پخپلو کښې سره جګړې وشوې اخر جعفر خان شکست وخوړو او میرعالم یواځې د ښار مالک شو. د احمد شاه د حملې په وخت کښې په مشهد باندې هم د دې میرعالم قبضه وه. میرعالم چې د احمد شاه د راتلو نه خبر شو نو د مشهد نه سره د خپله لښکره د مقابلې دپاره د هرات په لوري راروان شو. مګر څهٔ وخت چې تربت شیخ جم ته راورسیدو نو د احمد شاه لښکر په هغهٔ باندې فاساپه راپریوتو او وې تښتولو. په دې جنګ کښې احمد شاه سره درې زره د بلوچو رساله د نصیر خان د مشرې لاندې چې په بلوچستان کښې د قلات سردار وهٔ هم شامله وه. میرعالم چې شکست وخوړو نو مشهد ۍ پریښودو او وتښتیدو. هرکله چې د میرعالم شکست مشهور شو نو نصرالله خان د شاه رخ زوے مشهد ته راغے او خپل پلار ۍ د بند نه ازاد کړو احمد شاه په دې منځ کښې مشهد ته راورسیدو. مګر هغهٔ د مشهد حکومت شاه رخ مرزا ته پریښودو او د هغهٔ ۍ ډیر قدر او عزت وکړو. بیا هغهٔ د نیشا پور په طرف روان شو. نیشاپور یو ډیر مستحکم ښار وهٔ د هغهٔ نه چارچاپیره ملک زرخیز او ډیر سرسبز دے. د احمد شاه د حملې په وخت کښې عباس قلي خان او حاجي سیف الدین د ښار حاکمان وو احمد شاه د ښار محاصره وکړه مګر محاصره دومره وږده شوه چې ژمے راغے او ډیره زیاته واؤره پریوته. یخني او سله دومره زیاته شوه چې نهٔ سپاهیان په خیمو کښې ایساریدې شو او نهٔ څاروي بهر ژوندي پاتي کیدے شو. احمد شاه چې د یخنۍ د لاسه تنګ شو نو په ښار باندې ۍ چپاؤ وکړو ولې پسپا شو. هغهٔ هم هغه شان لا د ښار په محاصره کښې مصروف وهٔ چې د خراسان بعضې خانانو د هغهٔ د آمدورفت لارې هرات سره بندې کړې. احمد شاه اوس د نیشاپور نه په واپس کیدو مجبور شو. مګر د ژمي د واؤرو په وجه د هغهٔ بیشانه ډیر څوانان او سامان ضائع شول. اخر د بیشماره مشکلاتو نه پس هغه هرات ته راورسیدو خو د نیمي نه زیات فوځ ۍ په لاره کښې مړ شو.

دې ناکامۍ د احمد شاه په همت کښې هیڅ فرق رانهٔ وستو بلکې څهٔ وخت چې هغهٔ خپل صدر مقام ته راورسیدو نو سمدستي ۍ تازه دم فوځونه تیار کړل او په پنجاب باندې ۍ د حملې کولو نیت وکړو. د کال 1749ء په دسمبر کښې هغهٔ بیا د دریائے سندهـ نه پورې وتلو او د دریائے چناب په چپه غاړه د کوپره په مقام دیره شو. معین الملک المعروف میر منو د پنجاب ګورنر د هغهٔ مقابلې ته د لاهور نه راروان شو او د سوهدره کلي په خوا کښې چې د وزیر اباد ښار نه شلور میله نمرخاتهٔ ته پروت دے دیره شو. د هغه ځاے نه احمد شاه میر منو ته یو خط ولیکلو چې کهٔ چرې د مخکښې دپاره د شلور مهالو مالیه باقاعده ماته ادا کوے او د نادر شاه د زمانې نه چې څومره بقایا ده هغه هم ادا کوے نو زهٔ به واپس شم. میرمنو کښې د پښتنو د مقابلې طاقت نهٔ وهٔ. هغه دا خط شهنشاه دهلي ته واستولو او ورته ۍ د امداد

دزخواست وکړو مګر شهنشاه د احمد شاه مطالبه منظوره کړه او اقرار ئ وکړو چې د آئنده دپاره به د سیالکوټ، اورنګ اباد، ګجرات او پسرور مالیه چې د هغې اندازه قریباً څوارلس لکه روپۍ کیده دا به سالانه د احمد شاه وي. د دې نه پس هغه بیا واپس قندهار ته لاړو.

د کال 1750ء سپرلي کښې هغه بیا په نیشا پور باندې خپل فوځونه وروړاندې کړل او د ښار محاصره ئ شروع کړه. د نیشاپور په مقام باندې د فصیل د دیوالونو د ویشتو دپاره یوه لویه توپه ئ جوړه کړه. چې هغې به څلور سوه دوه اویا پونډه ګوله غورځوله. څهٔ وخت چې ورومبۍ ګوله د نیشاپور د فصیل په دیوال وغورځیده نو د فصیل دیوال او ډیر کورونه ئ وران کړل. د نیشاپور خلق په دې دومره ویریدل چې هغوي سمدستي د اطاعت د منلو دپاره قاصدان احمد شاه ته ولیږل. مګر څهٔ وخت چې احمد شاه په ښار کښې داخلیدو نو عباس قلي خان چې د نیشاپور په قلعه کښې پروت وۀ بې خبره په احمد شاه راپریوتو خو په لږ ساعت کښې پښتنو د هغهٔ فوځ تس نس کړو او عباس قلي خان ګرفتار شو. هغهٔ د احمد شاه نه د دې دوکې معافي وغوښته او د رحم درخواست ئ ورته وکړو. احمد شاه هغه حسب معمول معاف کړو او څهٔ موده پس ئ هغه د خپله طرفه د نیشاپور ګورنر مقرر کړو. د نیشاپور د فتح نه پس هغه هرات ته واپس راغے.

په مخکښې کال 1751ء کښې میرعالم بیا د شاه رخ مرزا برخلاف کامیاب بغاوت وچت کړو او د مشهد په خزانه قابض شو. دا ځل میرعالم چې شاه رخ د تخت نه کوز کړو نو سترګې ئ تړې وویستې. احمد شاه د شاه رخ د امداد دپاره مشهد ته لاړو. میرعالم له ئ شکست ورکړو او شاه رخ مرزا ئ بیا په تخت کښینولو. دې کارروایی سره سم هغهٔ یوه لویه رساله جهان خان او د نصیر خان د قلات د سرداری د لاندې د تون او تبوس د اضلاعو د تسخیر دپاره ولیږله. علي مردان خان حاکم تبوس او تون مقابلې ته راووتو. د دواړو فوځو تر منځه خونریز جنګ وشو. فیریر وائي چې د فریقینو جوش او جذبات دومره مشتعل شوي وو چې څهٔ وخت د دواړو فوځونو ګوله بارود ختم شو نو دواړه طرف ته سپاهیانو تورې راوویستلې او تر هغې پورې ئ د وښکلو تورو جنګ میدان کښې وکړو چې علي مردان خان قتل شو. میدان د پښتنو لاس کښې پاتې شو. تون او تبوس هم د پښتنو لاس ته راغلل. په دې جنګ کښې نصیر خان د بلوچو سردار قابل قدر خدمات وکړل. هم په دغه کال احمد شاه په استراباد باندې هم حمله وکړه خو څهٔ کامیابي ئ ونکړه. په دې شان د ایراني خراسان ډیره حصه د پښتنو لاس ته راغله او احمد شاه بیا واپس هرات ته راغے. په هرات کښې هغهٔ د ملک په انتظامي معاملاتو کښې مشغول شو.

په دې ځاے کښې دا ذکر کول هم مناسب دي چې د نادر شاه د حکومت په زمانه کښې د غلجو یو څو کورونه او تبرې د ایران په حدود کښې لا هم هغه شان ابادې وے. او د

هغوي پـه زړۀ کښې دا خيـال پـروت وۀ چې نادر شاه زمونږ په نسبت د ايران د تخت و تاج زيات مستحق نۀ دے. د دې خبرې ذکر وړومبے هم شوے دے چې نادر شاه پښتنو سره د ډيرو جنګونو کولو نه پس په دې نتيجه رسيدلے وۀ چې کۀ چرې د پښتنو مشر يو قابل سړے وي چې پـه هغوي کښې اندروني تنظيم او اتفاق پيدا کړي نو د دوئ په شان زړور او د اعتبار خـلق په دنيا کښې موندل ګران دي. چنانچه هغۀ هم د دې قاعدي د لاندې پښتانۀ هم په فوځ کښې او د ملـک پـه انتظـامي محـکمو کښې په لويو منصبونو او عهدو مقرر کړل. په دې پښتنـو کښې اسـد خان نومے يو غلجے سردار هغۀ د اذربائجان ګورنر مقرر کړے وۀ. د نادر شـاه د مـرګ نـه پـس چې پـه ايران کښې بادشاه ګردي شروع شوه نو اسد خان خپل ځان د اذربائجان په حکومت کښې ښۀ مضبوط کړو.

فيـريـر وائي چـې دا سړے ډير د مضبوطې ارادې خاوند بهادر او روشن دماغ پښتون وۀ. د هـغۀ عـدل و انـصـاف او د شيـعـه مذهب سره رواداری د هغۀ ډير ملګري په دې علاقه کښې پيـدا کـړل. او هغه د عراق او د خراسان بلکې د افغانستان هم د فتح کولو نيت وکړو. مګر کريم خان چې د زند د قبيلې يو ايرانے وۀ هغۀ خپل ځان د فارس په علاقه کښې او د ايران پـه جنـوبي علاقو کښې مستحکم کړو او بيا هغۀ د اسد خان برخلاف د جنګ تياري وکړه. اسـد خـان د خـراسان د فتح په نيت تر د مغانه پورې راغلے وۀ چې د کريم خان په اراده پوهه شـو نـو د دمـغـان نـه واپـس شـو او د قـزويـن په خواوشا کښې ئ د کريم خان په لښکر حمله وکـړه. کريم خان شکست وخوړو او دا شان وتښتيدو چې اصفهان او شيراز ئ هم پريښودل او د ايـران پـه جـنوبي غرونو کښې ئ پناه واخسته. کريم خان د دې غرونو نه بيا په اسد خان بـانـدې د حملې تياری شروع کړې. اسد خان د کريم خان په تعاقب پسې غرونو ته لاړو مګر غـرڅـنـو قبائـلـو پـه هغۀ باندې په درو کښې دومره زبردستې حملې وکړې چې د هغۀ لښکر بـالـکـل تباه شو. څۀ وخت چې هغه د دغه غرونو نه راتښتيدو نو محمد حسين قاجار چې هغه هـم د ايـران د تـاج و تـخـت مدعي وۀ د اسد خان په پاتې شوني فوځ باندې حمله وکړه. اسد خـان بـغـداد تـه وتښتيدو. کريم خان په دې کاميابی ډير زړور شو او بيا ئ خپلې علاقې قبضه کـړې. اسـد خـان د څۀ مودې د ګرځيدلو نه پس اخر کريم خان له راغے او د هغۀ ملازمت ئ اختيار کړو.

فيرير وائي چې اسد خان تراخره پورې کريم خان سره په ډيره وفاداری نوکري وکړه او دا د پښتـنـو اخـري کـوشـش وۀ چې هغوي د ايران د تاج و تخت د حاصلولو دپاره وکړو. کـريـم خان د دې فتوحاتو نه پس د ايران د اندروني معاملاتو په اصلاح کښې مشغول شو او د احمد شاه په فتوحاتو کښې ئ هيڅ دخل ور نۀ کړو.

د کال 1751ء په دسمبر کښې احمد شاه بيا د پنجاب طرف ته متوجه شو. مير منو د

احمد شاه پخپل ملک کښې د مصروفیتونو نه فائده وچتول غوښتل. نو هغهٔ د هغې څلورو مهالونو مالیه چې کومه شهنشاه دهلي هغهٔ ته ورکړې وه احمد شاه له ور نهٔ کړه. په پنجاب باندې د چپاؤ نه وړومبے هارون خان نومے خپل یو قاصد میر منو له لاهور ته د دې رقم چې څلیریشت لکه روپۍ وۀ د مطالبې دپاره واستولو. میر منو کوړه مل خپل مشیر چې په دې ورځو کښې د ملتان حاکم وۀ سره مشوره وکړه او دواړو په مصلحت هارون خان ته د ادائیگۍ نه انکار وکړو. او عذر ئې دا پیش کړو چې چونکې په ملک کښې بدامني وه له دې کبله په دې عرصه کښې هیڅ مالیه ټوله شوې نهٔ ده. احمد شاه دا نهٔ غوښتل چې میر منو سره جنګ وکړم هغه پخپله هم د هغهٔ د قابلیت او د بهادرۍ قائل وۀ او د مانو پور فاتح سره ئې بیا پنجه نهٔ اچوله. پس هغهٔ خپل قاصد دیوان سکهجیون مل لاهور ته میر منو له راولیږلو مګر میرمنو بیا هم په ادائیګۍ کښې لیت ولعل شروع کړو. خو په اخر کښې ئې نههٔ لکه روپۍ دیوان سکهجیون مل له ورکړې او د بقایې د ادائیګۍ لوظ ئې په دې شرط وکړو چې احمد شاه په پنجاب باندې د حملې کولو اراده ترک کړي. احمد شاه نههٔ لکه روپۍ خو واخستې مګر د لاهور طرف ته ئې خپله پیش قدمي بدستور جاري وساتله.

معین الملک خپله ټوله خزانه او د کور خلق راجه رنجیت دیو والئ جمو ته وسپارل او پخپله د پنځوسو زرو سورو سره او پیاده فوځ او د څلورو سوؤ توپو د احمد شاه مقابلې ته د راوي نه راپورې وتو او شاه دوله پل سره د لاهور نه دوه ویشت میله بره د راوي په غاړه دیره شو. احمد شاه په ډیر تدبر د میر منو فوځ په ځاے پریښودو او د هغهٔ د فوځ شاته ئې ځان ورسولو او شالامار باغ کښې ئې ډیره ولګوله.

معین الملک لاهور ښار ته په واپس کیدو مجبور شو. احمد شاه د لاهور ښار محاصره څلور میاشتې وکړه مګر دواړو فریقو سره خرڅ خوراک ختم شو او د هغوي فوځونه په سخت تکلیف کښې پریوتل. اخر په پنځم مارچ 1752ء کښې میر منو د ښار د فصیل نه بهر راووتلو او په پښتنو ئې عامه حمله وکړه. په دې جنګ کښې کوړه مل د معین الملک یو ډیر وفادار ملازم او د هغهٔ د طرف نه د ملتان د علاقې حاکم قتل شو. دې واقعې د معین الملک په فوځ کښې کمزورتیا پیدا کړه او هغه احمد شاه سره په صلح کولو مجبور شو. د شکست خوړلو نه په دویمه ورځ معین الملک پټکے په غاړه سره د دریو نوکرانو غوره ټپه ښهٔ په زړورتیا د احمد شاه په کیمپ راننوتو. شاه ولي خان او جهان خان د احمد شاه لویو وزیرانو هغهٔ سره د ډیر عزت او درناوي سلوک وکړو. او احمد شاه ته ئې د معافۍ دپاره پیش کړو. احمد شاه چرې وړومبے معین الملک نهٔ وۀ لیدلے هر کله چې ورته هغه پیش کړې شو نو د هغهٔ د زړورتیا، د ښکلې څهرې او د خوش اخلاقۍ دومره اثر پرې وشو چې هغهٔ معین الملک ته بې تحاشا ور ترغاړه وتو او د فرزند بهادر رستم هند خطاب ئې ورکړو. او د

ډیرو بې بها خلعتونو ورکولو نه پس ئ هغه د خپل طرف نه د پنجاب ګورنر مقرر کړو.

معین الملک بیا د خپلو قیدیانو د معافی هم د احمد شاه نه خواست وکړو هغه هم هغهٔ منظور کړو او ټول قیدیان ئ پریښودل. د دې نه پس د معین الملک او د پښتنو د بادشاه په منځ کښې باقاعده لوظنامه وشوه. او د لاهور او ملتان صوبې مستقل طور د پښتنو په حکومت کښې شاملې شوې. دا عهدنامه احمد شاه د خپل یو قاصد قلندر خان په لاس مغل شهنشاه دهلي ته د منظورۍ دپاره واستوله. شهنشاه دهلي قلندر خان سره په دیوان خاص کښې په دیارلسم د اپریل 1752ء خاص ملاقات وکړو او په دې عهد نامه ئ خپل مهر ولګولو.

هرکله چې قلندر خان دهلي ته رخصت شو نو احمد شاه د کشمیر د تسخیر اراده وکړه د دې غرض دپاره ئ د فوځ یوه دسته د عبدالله خان د مشرۍ لاندې ولیږله. عبدالله خان بغیر د څهٔ خاص مقابلې نه د کشمیر علاقه فتح کړه. او د مغلو حاکم ئ ترینه وویستو بیا احمد شاه دیوان سکهجیون مل په دې ملک باندې خپل حاکم مقرر کړو او عبدالله خان ئ د هغهٔ نائب کړو. د دې نه پس احمد شاه قندهار ته واپس شو او څلور کاله ئ په امن و امان کښې تیر کړل. صرف د هغهٔ یو وزارهٔ لقمان خان او څنې د غلجو مشرانو معمولي شانې بغاوتونه وکړل مګر په ډیره اسانتیا هغه دفع شول او باقي وخت ئ د نظام حکومت په سمولو کښې تیر کړو.

په دریم نومبر 1753ء میر منو د پنجاب ګورنر مړ شو. د هغهٔ د مرګ سره د پنجاب په سرکرده حاکمانو کښې پرې جنبې او سازشونه جوړ شول او په ملک کښې سخت ابتري ګړے پیدا شو. احمد شاه د خپلو اصولو مطابق د ګورنرۍ عهده د میر منو زوي محمد امین خان له ورکړه. چونکې هغه نابالغ وهٔ له دې کبله د هغهٔ مور مغلاني بیګم ئ د هغهٔ ولیه مقرر کړه. په دې باندې د پنجاب نورو امیرانو ناراضګي ظاهره کړه او فسادونه ئ پیدا کړل. د دې بد نظمۍ نه شهنشاه دهلي فائده وچته کړه او په مارچ 1756ء کښې ئ یو لوے فوځ د وزیر عماد الملک د کمان لاندې د پنجاب د تسخیر دپاره راولیږلو. عمادالملک بې تکلیفه په لاهور قابض شو مغلاني بیګم ئ قیده کړه او ادینه بیګ نومے یو سړے چې د خپلې چالاکۍ او د پرې جنبې جوړولو په کار کښې نامتو وهٔ ګورنر مقرر کړو. دا ادینه بیګ په اصل کښې د میر منو زوړ نوکر وهٔ.

احمد شاه د دې خبر په اوریدو سره سمدستي په نومبر 1756ء کښې په ډیر شتاب قندهار نه رااروان شو او د راتلو سره ئ ادینه بیګ د لاهور نه وویستلو او نیغ په دهلي ورغے د دهلي بادشاه د وزیر د جورو جفا دلاسه پخپله ډیر تنګ وهٔ او رعایا د اراکین سلطنت بدعملو په وجه په ډیر تکلیف کښې پروت وهٔ. د مغلو عظیم الشان سلطنت چارچاپیره نه

دشمنانو په نرغه کښې وۀ. هر کله چې احمد شاه د دهلي نه شل ميله ديخوا ورسيدو نو وزير د صلح دپاره احمد شاه ته پيغام وليږلو او د مير منو کونډه بي بي ئ د سفارش دپاره هغۀ ته ور وليږله. مګر احمد شاه د جنګ او بې عزتۍ تاوان وغوښتو او چې وزير د هغې د ورکولو نه انکار وکړو نو په دهلي ئ حمله وکړه او په جنوري 1757ء کښې ئ واخستو. د احمد شاه د مرضۍ نه بالکل برخلاف د پښتنو سپاهيانو په دهلي کښې ډير کورونه لوټ کړل.

احمد شاه څۀ موده په دهلي کښې پاتې شو او سردار جهان خان ئ د جاټ قوم برخلاف وليږلو. جهان خان د بلم ګړهـ قلعه فتح کړه بيا ئ د متهرې په ښار حمله وکړه او وا ئ خستو. بيا جهان خان اګرې ته روان شو مګر د جاټ قوم د سختې مقابلې په وجه پسپا شو. په دهلي کښې د قيام په دوران کښې احمد شاه د شاهي خاندان يوه شهزادګۍ خپل زوي تيمور له په نکاح کړه. او د پنجاب او سندهـ علاقې ئ د تيمور بي بي ته (چې د احمد شاه شهنشاه دهلي لور وه) خپل پلار په پرونې کښې ورکړې. د سرهند صوبه هم هغۀ پخپل حکومت کښې شامله کړه او عبدالصمد خان محمدزے د هشنغر ئ د هغې ګورنر مقرر کړو.

د هندوستان د ګرمۍ په وجه د احمد شاه فوځونه اوس تنګ شول. او هغه قندهار ته واپس شو. د مير منو ورور ئ د شهنشاه دهلي وزير مقرر کړو او نجب خان پښتون حاکم سهارنپور ئ د هغۀ د فوځونو سپه سالار کړو. د پنجاب او د سندهـ د علاقو حکومت ئ خپل زوي تيمور ته حواله کړو او سردار جهان خان ئ د هغۀ وزير مقرر کړو. د شهزاده تيمور په زمانه حکومت کښې سکهان په ډير شمار کښې د غرونو نه ميدانونو ته راکوز شول او د امرتسر په خواوشا کښې ئ د پښتنو د مقابلې دپاره فوځي تيارۍ شروع کړې. تيمور د ټولو نه وړومبے په دې سکهانو باندې حمله وکړه او کومې قلعه ګانې چې هغوي جوړې کړې وے هغه ئ ونړولې. او د مذهبي مجنونانو دا ټولګے ئ خور اور کړو. سکهانو څو څو ځلې په دې زمانه کښې په سرهند او د پنجاب په نورو مقاماتو باندې حملې وکړې او په ملک کښې ئ ډير فسادونه او لوټمار وکړو . اګر کۀ پښتنو هغوي هيچرې هم د مذهبي اختلافاتو په وجه تنګ کړي نۀ وو مګر د سکهانو دا عقيده وه چې د هغوي په حکومت کښې لارې لوټ کول او ملک کښې دننه فتنه او بدنظمي پيدا کول ښۀ کار دے. په دې کار کښې هغوي سره ادينه بيګ چې د احمد شاه د حملې په وخت کښې غرونو ته تښتيدلے وۀ هم شامل وۀ او هغوي له به ئ خفيه امداد ورکولو.

احمد شاه لا ډيره موده قندهار کښې نۀ وه تيره کړې چې غازي الدين خان سابق وزير شهنشاه دهلي چې فرخ اباد ته مرهټو له تښتيدلے وۀ هغۀ په دهلي باندې سره د مرهټو د يو لوے لښکر راروان شو .او د دهلي محاصره ئ وکړه. نجب خان د څۀ معمولي مقابلې نه پس سهارنپور ته واپس لاړو. هم په دې ورځو کښې په پنجاب کښې بيا سخت بغاوتونه شروع

شول او ادینه بیګ سکهانو سره یو ځاے د جالندهر په مقام بیشانه ډیر ښتانۀ قتل کړل. ادینه بیګ او سکهانو بیا مرهټوۀ ته په پنجاب باندې د حملې کولو ترغیب ور کړو. چنانچه مرهټه چې په شمار کښې قریباً دوه لکه وو ورومبے په اتم مارچ 1758ء په سرهند ورغلل. دې مرهټوۀ د دې فوځ سره چې د هغې سالار ګهوناتهـ راؤ وۀ د ادینه بیګ تیار کړے د سکهانو فوځ هم شامل شو او دواړو لښکرو په سرهند باندې حمله وکړه. په عبدالصمد خان کښې د دومره لښکر د مقابلې طاقت نۀ وۀ. له دې کبله د څۀ مودې د محصور کیدو نه پس هغۀ قلعه پریښوده او وتښتیدو. مګر مرهټوۀ هغه ګرفتار کړو. د دې نه پس هغوي ټول سرهند لوټ کړو او دا شان تالان ئ ګډ کړو چې چا پورې ئ د تن پټولو جامې هم پرې نۀ ښودې.

د دې نه پس هغوي په څلورم اپریل لاهور ته راغلل، جهان خان بې مقابلې لاهور پریښے وۀ او د ښتنو لښکر ورو ورو د دریائے اټک نه هم راپورې وتو. په دې ادینه بیګ د مرهټوۀ د طرف نه په پنځۀ اویا لکه روپۍ سالانه خراج د پنجاب ګورنر شو. ولې لږه موده پس هغه نامراد مړ شو. د پنجاب د تسخیر نه پس قریباً قریباً ټول هندوستان سوائ د اودهـ د علاقې نه د مرهټه قوم د اثر د لاندې راغلو. چنانچه د غازي الدین په مصلحت اوس هغوي د اودهـ د اخستو نیت وکړو په ټول اودهـ باندې د ښتنو روهیلو قبضه وه. دا مرهټه څوک وو پکار دي چې په دې ځاے کښې یو مختصر کیفیت د هغوي متعلق بیان کړې شي.

مرهټه قوم وړومبے وړومبے د شاه جهان مغل چې د اکبر نمسے وۀ په عهد حکومت کښې زور ونیولو او په مغربي او جنوبي هندوستان کښې ئ د خپل اقتدار قائمولو کوشش وکړو. اورنګزیب د شاه جهان زوي قریباً دیرش کاله د هغوي په بیخ کنی کښې تیر کړل مګر هغوي بدستور په دې ملکونو کښې د خپل حکومت قائمولو مسلسل جدوجهد کولو. د دوئ اصلي کور مغربي هندوستان وۀ. او د ملکونو تباه کول، د ډاکو وهل، او د خلقو تښتول ئ پیشه وه. چونکې هغوي ډیر کټاس هندوان وو او پخپله عقیده کښې متعصب وو په دې سبب هغوي د مسلمانانو شوکول ، تزنول او هغوي ته مالي او جاني نقصان ورکول ډیر نیک کار ګڼلو. چونکې هغوي زړور او د تیښتې ډیر مړني وو هغوي به د مغلو په فوځ ناساپه راپریوتل، څۀ سرې به ئ ترینه مړۀ کړل او بیا به غرونو ته وتښتیدل. چونکې هغوي په میدان کښې مخامخ د مغلو شاهي فوځ سره ډیر کم مقابله شوي وو له دې کبله اورنګزیب او د هغۀ سپه سالاران هغوي له په قطعي شکست ورکولو کښې ناکام وو. هرکله چې د اورنګزیب د مرګ نه پس د مغلو زوال شروع شو او د مغلو د بیلو بیلو صوبو مسلمانان حاکمان یو بل سره په جنګ کښې ونښتل او په ټول ملک کښې د هغوي د خانه جنګو او بې اتفاقو په سبب بدامنې پیدا شوه نو د مرهټۀ د سیواجي د لاندې خپل ځان په یو غیر معمولي پیمانه منظم او متفق کړو. او په ورو ورو ئ ځانونه د جنوبي او مغربي هندوستان مالکان کړل. بتدریج د

هغوي اثر شمالي هندوستان پورې هم راورسیدو او د دهلي مغل شهنشاه نه ئ د خپل فوځي طاقت په زور د یو خاص قسم محصول واخستو. څهٔ وخت چې نادر شاه په دهلي باندې حمله وکړه نو هغه وخت هم د هغوي په ټول هندوستان کښې دومره زور وهٔ چې د بیلې بیلې صوبې نه به هغوي خراج اخستو.

هرکله چې مرهټو په پنجاب قبضه وکړه نو شهزاده تیمور د احمد شاه زوے د 1758ء په موسم د اوړي کښې د پنجاب نه راووتلو او مرهټه د پنجاب د یو سر نه تر بله سره پورې قابض شول. تر دې چې په ملتان باندې ئ هم قبضه وکړه. احمد شاه چې د دې فتنې او فسادونو نه خبر شو نو هندوستان باندې ئ د حملې کولو تیاری بیا شروع کړې. مګر په دې منځ کښې نصیر خان د بلوچو سردار بغاوت وکړو. د بلوچستان تاریخ په دې مقام بیانول نامناسب دي مګر دومره وئیل ضروري دي چې نادر شاه د دې صوبې حاکم محبت خان نومے یو بلوچے سردار مقرر کړے وهٔ څهٔ وخت چې هغه مړ شو نو حاجي خان د هغهٔ ورور د هغهٔ په ځاے مقرر شو. حاجي خان په خوئ کښې ډیر ظالم وهٔ او رعایا ترینه تنګ وو. د دې نه علاوه هغه د احمد شاه په زمانه کښې د هغهٔ د وزارهٔ لقمان خان په بغاوت کښې د هغهٔ په مرسته څهٔ حصه اخستې وه. په دې وجوهاتو احمد شاه هغه معزول کړو او د هغهٔ بل ورور نصیر خان ئ د بلوچو سردار مقرر کړو. نصیر خان ډیر بهادر او ځوانمرد سړے وهٔ. د احمد شاه د انتخاب په وخت کښې هغه هم په قندهار کښې په جرګه کښې شامل وهٔ. د احمد شاه په بادشاه کیدو هغهٔ هم دعا د خیر کړې وه. د دې نه پس هغه احمد شاه سره د ایران او د هندوستان په هره یوه مشهوره معرکه کښې شامل شوے وهٔ او ډیر قابل قدر خدمات ئ د هغهٔ کړي وو. مګر هرکله چې هغه د مرهټو د حملې او د پنجاب د احمد شاه د لاسه د وتلو او د تیمور شاه د راتښتیدو خبر واورېدو نو شیطان ورته لمسه وکړه چې د احمد شاه نه بغاوت کول او د خودمختاره کیدلو ښه موقع ده.

د نصیر خان او احمد شاه تعلقات همیشه ډیر خواږهٔ او د ورورولۍ پاتې شوي وو. هغهٔ نصیر خان ته ډیر د عزت او درناوي په نظر کتلي وو او د فیاضۍ سلوک ئ ورسره کړے وهٔ. د دې دپاره هغه د نصیر خان په بغاوت ډیر حیران شو. او د جنګ نه وړومبے ئ هغهٔ ته د صلح پیغام ولیږلو. مګر نصیر خان خپل ځان د احمد شاه مقابلې ته تیار کړے وهٔ. په دې وجه هغهٔ د احمد شاه د حکومت منلو نه انکار وکړو. مجبوراً احمد شاه خپل وزیر شاه ولي خان یو لوے فوځ سره د نصیر خان د سرکوبۍ دپاره واستولو. ولي شاه ولي خان د مستون په مقام باندې د یو خونریز جنګ نه پس شکست وخوړو. خو نصیر خان د پښتنو تعاقب ونهٔ کړې شو او په مستون باندې ئ خپل فوځونه دیره کړل. او په ټولو خوړونو او ولو کښې ئ محافظې دستې مقرر کړې. احمد شاه ته اوس د څلورو واړو طرفو نه تکلیفونه او مصیبتونه

پیش شول. پنجاب چې د هغهٔ حد تر سرهند پورې تلے وۀ د مرهټو په لاس ورغے. د سکهانو زور ورځ تر ورځ پـه زیـاتیدو وۀ. تیمور شاه د هغهٔ زوي او جهان خان واپس شکست خورده وطن ته راروان وو او د دې دپاسه د هغهٔ وزیر د بلوچو دلاسه شکست وخوړو.

غـرض دا چې خـلـقـو ته دا شان معلومیده چې د احمد شاه د اقبال ستورے په پریوتو دے. مـگـر پـه دې تـولو مصیبتونو کښې د احمد شاه حوصله د یوې لحظې دپاره هم خرابه نهٔ شوه او سمدستي ئ په خپله په ځان د یو ښهٔ لښکر سره مستون ته د دې کورنی خطرې د لرې کـولـو دپـاره روان شـو. هغه په خوړونو او ولو باندې لکه د سیلاب پشان پورې وتو. او نصیر خـان لا هغسې په خپل کیمپ کښې د احمد شاه د فوځ د نقل و حرکت د خبر په انتظار کښې ناست وۀ چې احمد شاه په هغهٔ راپریوت او شکست فاش ئ ورله ورکړو. نصیر خان قلات ته وتښتیدو خو احمد شاه ئ تعاقب وکړو او د ښار محاصره ئ شروع کړه.

د پښتـنـو بـې صبـري او بـې حـوصـلـې توب مشهور دي او مؤرخین وائي چې اگرچې پښتـانهٔ په میدان کښې په داسې قسم جنگ کښې ډیر تکړه او بهادر دي چې د کوم فیصله په ورځ یـا دوه کښـې کیدونکي وي. مگر هر کله چې جنگ وړد شي نو د هغوي حوصلې پست شي او زر زړونـه بـائـلـي. ځنې زړو مؤرخینو دا هم لیکلي دي چې کهٔ د پښتنو د ورومبی دوه درې ورځـو د جـنـگ د جـوش مـقـابـلـه چا وکړه او هغه ونهٔ تښتیدو نو پښتانهٔ په شلورمه ورځ پخپله میدان پریږدي.

د قـلات پـه مـحـاصره کښې هم پښتنو هم دغه شان خوئ وکړو. د ډیرې وړدې گوله بـاری نـه پس احمد شاه د ښار د فصیل دیوال په ډیرو ځایونو کښې مات کړو او په پنځو بیلو بیلـو مـقـامـونـو ئ حملې وکړې. مگر په یوه حمله کښې هم څهٔ قابل ذکر کامیابي ونهٔ شوه. دیـخوا هره ورځ به څهٔ نوې خبره احمد شاه ته د مرهټو د فتوحاتو رارسیده او په دې وجه هغه د قـلات پـه تـسـخـیـر کښـې ډیـره جلدي کوله. اخر کار د څهٔ مودې د محاصرې نه پس نصیر خـان هـم تـنـگ شـو او د احـمـد شـاه د سردارانو هم صلاح وه چې هغهٔ سره دې صلح وشي. قـاصـدان د نـصـیـر خـان او د احمد شاه د وزیرانو په منځ کښې وزغلیدل او اخر نصیر خان په دې شرطونو صلح وکړه :

(۱) بلوچستان به هم د ورومبي پشان د احمد شاه د بادشاهی د لاندې وي.

(۲) هر کله چې احمد شاه د خپل سلطنت نه بهر په جنگ وځي نو نصیر خان به هم د فوځ یوه دسته د شاهي فوځ د امداد دپاره را استوي.

(۳) د دې امـدادي فوځ خرڅ خوراک، گوله بارود او نور سامان جنگ به احمد شاه د خپلې خزانې نه ورکوي.

(۴) احـمـد شـاه اقـرار وکـړو چـې د بلوچو امدادي فوځ به زهٔ د ملک په اندروني خانه جنگو

کښې چرې نهٔ استعمالوم.

(۵)د دې امدادي فوځ د خدماتو په عوض کښې احمد شاه نصير خان ته د سالانه خراج د معاف کولو اقرار هم وکړو او د آئنده تعلقاتو د مضبوطولو په غرض احمد شاه د نصير خان د ترهٔ لور سره نکاح وکړه.

هر کله چې د بلوچستان معاملات د احمد شاه د منشا مطابق فيصله شول نو هغهٔ ټوله توجه د هندوستان طرف ته کړه. د بلوچستان د جنګ په دوران کښې څهٔ وخت چې هغهٔ د شهزاده تيمور د فوځونو د پسپا کيدو نه خبر شوے وهٔ نو هغهٔ يو ورکوټے غونډې لښکر د سردار نورالدين خان په ماتحتۍ کښې د هغهٔ امداد ته وليږلو. نورالدين خان د دريائے سنده نه پورې وتلو او تر چناب پورې بې تکليفه ورسيدو. د دې اړې ګړې په دوران کښې د مرهټو نه علاوه سکهانو چارچاپيره په مختلفو علاقو حملې کولې او خپل حکومتونه ئې قائمول. د مرهټهٔ اصلي لښکر دهلي ته واپس شوے وهٔ مګر د هغوي په ځاے سکهان قابض شوي وو. نورالدين خان دا مناسب ونهٔ ګڼل چې د احمد شاه د حکم نه بغير ډير مخکښې لاړ شم. پس هغهٔ د وزير اباد په مقام ډيره ولګوله او د بادشاه د حکم په انتظار شو. چونکې احمد شاه د بلوچستان په معامله کښې مصروف وهٔ او د هغه نه پس په قندهار کښې هم څهٔ دا قسم معاملات موجود وو چې احمد د هغې د فيصلې نه بغير قندهار نهٔ شو پريښودے. له دې کبله په هندوستان باندې د حملې کولو کښې ډيرې مياشتې تيرې شوې. اخر د کال 1759ء په ژمي کښې احمد شاه د خپل ملک اندروني معاملات خاطر خواه فيصله کړل او لوے لښکر ئې په هندوستان باندې د حملې کولو دپاره تيار کړو. هغه د قندهار نه په دره بولان بلوچستان ته راووتو. او بيا مخ په بره پيښور ته راغے. د پيښور نه هغه نيغ وزير اباد کښې خپل سالار نورالدين خان سره يو ځاے شو. په لاره باندې هر ځاے کښې هغهٔ بيا سر دوباره خپل حکومت او انتظام قائم کړو. پس د هغې نه د شمالي پنجاب په علاقو کښې هغهٔ ګشت وکړو او سهارنپور په خواوشا د جمنا درياب نه پورې وتلو. او په هغه ځاے کښې ئې مقام وکړو. په دې ځاے کښې نجب خان حاکم سهارنپور او ټول روهيلي پښتانهٔ چې اکثر پکښې يوسفزي وو هغهٔ سره شامل شول.

په دې ځاے کښې دا هم وئيل مناسب دي چې په کال 1753ء کښې وزير غازي الدين خپل مغل شهنشاه دهلي احمد شاه د تخت نه کوز کړو او د هغهٔ ورارهٔ عالمګير ثاني ئې په تخت کښينولو. په کال 1760ء کښې غازي الدين عالمګير ثاني قتل کړو او د مرهټهٔ په ملګرتيا کښې ئې د هندوستان ټول حکومت په لاس کښې واخستو. د مغلو د حکومت د زوال په سبب د هندوستان په هره حصه کښې عجيبه بادشاه ګردي وه. او د هر چا چې به وس رسيدو نو په بل به ئې حمله کوله. او خپل حکومت به ئې قائمولو. هر څومره مغل او پښتانهٔ

حاکمان چې په کومو کومو صوبو کښې مقرر شوي وو هغوي هلته ځانونه خودمختار کړل
او اګرچې برائ نام د شهنشاه دهلي ماتحت ګڼلے شول مګر په حقیقت کښې د دهلي
بادشاه په هغوي باندې هیڅ اثر نهٔ وهٔ پاتې شوے. بلکې د دهلي بادشاه په خپله د مرهټو د زو
او د طاقت په وجه په دهلي کښې بالکل بې واکه او بې اختیاره وهٔ. د هندوستان د صوبو
حاکمانو د دې بې اتفاقو نه د مرهټه قوم دومره فائده واخسته چې هغوي په ټول ملک کښې
لوټمار کولو او یوه علاقه هم داسې نهٔ وه چې د هغوي د دست برد نه خلاصه وے. په دې
کښې هیڅ مبالغه نشته چې په هره علاقه به هغوي چپاؤ وکړو نو نهٔ به په هغې کښې ژوندي
سړي پاتې شو او نهٔ ځناور او نهٔ به پکښې فصلونه چا لیدے شول او نهٔ میوه. د مسلمانانو زوا
په هر طرف شروع شوے وهٔ او نهٔ شهنشاه دهلي سره او نهٔ د نورو صوبو یو حاکم سره داسې
منظم او باقاعده فوځ وو چې د مرهټو مقابله ئې کړې وے. او رعایا ئې د هغوي د ظلم زیاتي نه
خلاص کړې وے. په مغربي او جنوبي هندوستان باندې خو هغوي قریباً قریباً مکمله قبضه
کړې وه باقي د نور صوبو نه به هغوي باج ټولولو. مګر سره د باج د ټولولو نه به چې ځ
وخت د هغوي زړهٔ وغوښتل نو د هغوي فوځونو به په یو ملک باندې چپاؤ وکړو. ابادي به ئ
ټوله لوټ کړه او بیشماره سړي به ئې قتل کړل. او ډیرې ښځې به ئې وینځې کړې. دغه وج
وه چې څهٔ وخت احمد شاه سهارنپور ته راورسیدو نو د هندوستان خلق بالعموم او د صوبو
پښتانهٔ حاکمان بالخصوص د هغهٔ په راتلو باندې ډیر خوشحاله شول. او د احمد شاه راتلل ئ
د هندوستان مظلوم اولس دپاره د خلاصي او د نجات باعث وګڼلو.

د سهارنپور په خواوشا کښې د مرهټو د فوځ د دته پټیل او جنکوجي مشر به پ
ماتحتي کښې پروت وهٔ مګر څومره چې د احمد شاه فوځ وړاندې کیدو نو د مرهټو فوځ پ
شا تلو. تر دې چې د دهلي خواوشا ته راورسیدل. د دهلي نه لږ بره هغوي د جمنا نه راپورې
وتل. او د دهلي د بچ کولو په خاطر د دهلي په خوا کښې د بدلي نومے کلي خوا کښې دیره
شول. د بدلي په مقام د مرهټو او د پښتنو تر منځ یو لوے جنګ وشو مګر مرهټو شکست
وخوړو او دته جي پټیل په هغې کښې قتل شو. ملهار راؤ هلکر د مرهټو یو بل سپه سالار وهٔ د
دته جي پټیل د فوځونو د امداد په غرض د بدلي په طرف راروان شو چې احمد شاه د خپل
فوځ یوه دسته ورولیږله او هغوي لا په کیمپ کښې ځان سنبالولو چې پښتانهٔ په هغوي ناساپ
ورپریوتل او د ملهار راؤ فوځ ئې تس نس کړو.

احمد شاه بیا دهلے واخستو. غازي الدین د دهلي نه وتښتیدو او ملهار راؤ سره ئ
پناه واخسته. احمد شاه په دهلي کښې څهٔ لږ فوځ پریښودو او د ګنګا جمنا په منځ کښې
ملک چې ورته دوابه وئیلے شي ټول ئې فتح کړو او تر انوب شهر پورې چې د دهلي نه دري
اویا میله لرے دے ورسیدو. په هغه ځاے کښې هغهٔ خپل فوځونه د برسات تیرولو دپاره دیره

کړل. هم په دې مقام باندې نواب شجاعت الدوله د اودهـ چې د نواب وزير په نوم بللے شو هغه سره د امداد په غرض شامل شو.

د برسات په موسم کښې مرهټو يو نوے عظيم الشان لښکر د خپلو مقبوضاتو د واپس اخستو دپاره په پونه کښې چې د هغوي صدر مقام وۀ تيار کړو. علاوه د خپل فوځ نه هغوي د هغه ټولو مسلمانانو حاکمانو نه هم امدادي فوځونه راوستل څوک چې د هغوي باجگزار وو او دغه شان هغوي تقريباً دوه لکه فوځ چې په هغې کښې خو اويا زره تش سوارۀ وو شل لويې توپې او دوه سوه څرخي توپې وے تيار کړو.

د احمد شاه باقاعده فوځ سره د هغې امدادي فوځ چې شجاعت الدوله ځان سره راوستے وۀ قريباً پنځوس زره وۀ څلويښت زره د احمد شاه خپل پښتون فوځ وۀ او لس زره شجاعت الدوله ځان سره راوستے وۀ. او ديرش زره روهيلي چې باقاعده سپاهيان نۀ وو هم هغۀ سره په دې جنگ کښې موجود وو. د مرهټو د فوځ سپه سالار اعظم ويسواس راؤ ولي عهد سلطنت مرهټه وۀ. اوسي راشي راؤ چې د هغۀ بل نوم بهو وۀ د هغۀ فوځي جرنيل وۀ. دا فوځ په ډير شان او دبدبې سره د دکن نه راروان شو او نيغ په دهلي باندې راوختو. راتلو سره هغوي د دهلي محاصره وکړه. چونکې د درانو فوځ په دهلي کښې ډير معمولي وۀ مرهټو د لږو ورځو نه پس دهلے په دويشتمه جولائي 1760ء کښې واخستو.

احمد شاه د جمنا په گسه غاړه پروت وۀ او چونکې جمنا کښې د سيلاب د اوبو په وجه پورې وتل ممکن نۀ وو. هغۀ خپل د دهلي فوځ له هيڅ امداد ور نۀ کړې شو. مرهټو دهلے ښۀ لوټ کړو او بيا په کنج پوره باندې چې د دهلي نه قطب ته شپيتۀ ميله باندې وۀ او د پښتنو څۀ لږ ډير فوځ هغلته وۀ ورغلل. احمد شاه سره د فوځه د کنج پورې امداد ته روان شو خو د هغۀ د رسيدو نه وړومبے دغه ځاے هم مرهټو په اوولسم اکتوبر فتح کړو. د احمد شاه او د مرهټو د فوځ منځ کښې د جمنا سيند پروت وو او په دې وجه هغۀ په مرهټو باندې د حملې کولو زړۀ نشو کولے. مگر د يو څو ورځو د انتظار نه پس اوبۀ لږې کمې شوې ولې په ټولو گودرونو باندې د. مرهټو ډير زيات فوځونه تر لرې لرې پراتۀ وو. د نورو يو څو ورځو د انتظار نه پس احمد شاه په مرهټو د حملې کولو فيصله وکړه او سردار صمد خان يوسفزي ته ئې حکم ورکړو چې د پنځو زرو سورو سره په هر شان چې وي د جمنا نه پورې وځه. او په مرهټو حمله وکړه. صمد خان سمدستي خپل ټول سوارۀ په سيند ورواچول مگر د مرهټو سپاهيانو چې په هغې کښې ډير مغل شامل وو دا قسم گوله باري په هغوي وکړه چې د صمد خان ملگري نۀ مخکښې تللے شو او نۀ وروستو. احمد شاه بيا خپلو نورو سورو ته حکم وکړو چې د صمد خان امداد ته لاړ شئ. مگر چې هغۀ وليدل چې دا فوځ هم د. سيند نه په پورې وتلو کښې ناکام شو نو هغه پخپله په اس سور شو او خپله ذاتي محافظه دسته ئې ځان سره

واخسته او په سینه ورګډ شو. او خپل ټول فوځ ته ئ حکم وکړو چې راځئ راپسې. فوځ چې دا تماشه ولیده او د احمد شاه دا بهادري او جرأت او توکل ئ پخپلو سترګو وکتلو نو هر یو د بل نه په سینه په پورې وتلو کښې په وړاندې کیدو شو. په دې ساعت مرهټۀ په داسې شدت د جمنا په سیند کښې ګولۍ وورولې چې سیند د پښتنو د مړو نه ډک شو مګر احمد شاه او د هغۀ لښکر په یخ زړۀ او په کمال حوصلې سره د مرګ هیڅ پروا ونۀ کړه. او په بې مثاله شجاعت د سیند نه پورې وتل او پورې وتلو سره ئ دشمن له دا شان زک ورکړو چې هغوي ټول د پاني پت میدان ته وتښتیدل او په هغه ځاے کښې ئ د ځان نه چارچاپیره لوي لوي خندقونه وکنستل.

احمد شاه هم خپل فوځونه د پاني پت په میدان کښې په داسې مقام دیره کړل چې په مرهټۀ باندې ئ د خوردونوش راتلل بند کړل. مرهټۀ هم د احمد شاه د آمدورفت په لارو باندې چپاؤنه کول چې د هغۀ فوځ هم د خوراک له لاسه تنګ شي. مګر په دې کوشش کښې احمد شاه د هغوي په نسبت زیات کامیاب وۀ. دې کښې شک نشته چې احمد شاه د دومره لږ فوځ سره د مرهټۀ په دومره عظیم الشان لښکر باندې د هغوي د خندقونو او د زبردستې توپخانې په مقابله کښې د مخامخ نه حمله نۀ شوه کولے. مګر دې سره مرهټۀ د مچ میږو پشان دا بیشماره لښکر او د دومره لویې رسالې د پاني پت غوندې میدان کښې د ډیرې مودې دپاره د خندقونو دننه هم نشو پاتې کیدے.

احمد شاه هم په دې خبره ډیر ښۀ پوهه وۀ او چونکې هغۀ ته د حملې په کولو کښې څۀ خاص جلدي نۀ وه هغۀ د مرهټۀ حوصلو پست کولو دپاره، او د بې صبره کولو دپاره هغوي سره فیصله کن جنګ نۀ غوښتو. په دغه حالت کښې دواړه فوځونه درې میاشتې پورې هم دغه شان یو بل ته مخامخ پراتۀ وۀ او سوائ د دې نه چې د مرهټۀ د خوردونوش سامان راوړونکو فوځي دستو باندې کله کله حملې وکړې. احمد شاه په لویه پیمانه باندې د مرهټۀ په کیمپ په دې ټوله معرکه کښې څۀ حمله ونۀ کړه. د هغۀ مطلب دا وۀ چې مرهټه تنګ شي او په ما باندې هغوي په حمله کښې ورومبے شي. په دې اثنا کښې د مرهټۀ د حوصلې ماتیدل شروع شول او هغوي د شجاعت الدوله په ذریعه احمد شاه ته د صلح څۀ سوال جواب هم ولیږلو مګر چونکې د هغې شرطونه ډیر خراب وۀ. په دې وجه احمد شاه د صلح دا تجویز مسترد کړو. د پاني پت په میدان کښې د احمد شاه د جنګي قابلیت تعریف د هغه زماني یو مؤرخ کړے دے چې بیا په انګریزئ کښې د ایشیاټک ریسرچز په دویم جلد کښې ترجمه شوے دے د هغې بعضې فقرې مونږ لاندې درج کوؤ.

"او په کومه ورځ چې احمد شاه درانۍ خپل موجوده کیمپ ته راورسیدو نو هغۀ یوه وړه سره خیمه د خپل فوځ په مخکښې قریباً یو نیم میل د کیمپ نه لرې ولګوله. او هر سحر

بـه هـغـهٔ د نـمرخاتهٔ نه وروميے كيمپ ته پخپله راتلو. هر سبا به چې هغه پاڅيدو نو د مانځهٔ نه پس بـه پـه اس سور شو او څلويښتو پنځوسو سورو سره به ئې شهزاده تيمور خپل زوي سره خان ملګرے کړو. او د فوځ پـه بيله بيله څوكى به ئې ګشت وكړو. بيا به هغه د دشمن د كيمپ نـه چارچاپيره وګرځيدو. خلاصه دا چې هر يو وړكوټے وړكوټے څيز به هم هغهٔ په خپلو ستر ګو كتلو. او هره ورځ به څلويښت پنځوس كروهه په اس ګرځيدو. د غرمې نه پس بـه هغه خپلې ورې خيمې ته لاړو او كله به ئې هغلته روټۍ وخوړه. او كله به ئې دننه په كيمپ كښې پـه شاهـي خيمه كښې روټۍ وخوړله. دا د هغهٔ د روزانه نظام عمل وۀ. د شپې به قريباً پـنـځـهٔ زره سـوارهٔ د دشمن كيمپ ته دومره نزدې د څوكۍ دپاره ودريدل چې څومره هغوي دشـمـن ته ورنزدې كيدے شول. او ټوله شپه به هغوي سره د وسلې په هغه ځاے كښې څوكۍ كوله. نورو فوځي دستو به د كيمپ نه چارچاپيره ګشت كولو. احمد شاه به خپلو هندوستاني مـلـكرو ته وئيل تاسو په ارام اوده شئ دا زما ذمه ده. چې تاسو ته به هيڅ نقصان نهٔ دررسي. او رښتيا خبره دا ده چې د هغهٔ د حكمونو تعميل به لكه د ولي الله په شان كيدلو. او هيچا ته هم دا جرأت نهٔ وۀ چې د هغهٔ د حكم په منلو كښې دې د يوې لحظې څهٔ ډيل وكړي او لا دې په هغې كښې څوك څهٔ خبره وكړي.

هـره ورځ بـه فـوځـونـه او تـوپـې دواړه طـرف تـه په قطار كيدل او د لرې نه به دواړه لښـكـرو په يو بل ګوله باري كوله. كله كله به د دواړو طرفو د رسالو تر منځه څهٔ شوكه پوكه هـم وشـوه خو ماښام ته به دواړه فوځونه خپل خپل كيمپ ته واپس شول. درې مياشتو پورې هـم دغـه شـان كـارروائـي وشوه. په دې موده كښې درې ښې كافي لويې لويې معركې وشوې مـكـر ټـول فـوځ پكښې شامل نهٔ شو. دغه شان به هره ورځ دواړه فوځونه د سحر نه تر نهو او لسو بجو د شپې پورې په جنګ كښې مصروف وو. اخر كار د احمد شاه هندوستاني ملګري بـې صبـره شـو او بادشاه ته ئې سوال وكړو چې زمونږ د دې ستومانۍ او تكليفونو خاتمه وكړه او يو فيصـلـه كـن جـنـګ ونښلوه. مګر د دې په جواب كښې به هغهٔ تل دا وئيل دا د جنګ مـعـامـلات دي د دې نـه تـاسو ناواقفه يئ. په نورو معاملو كښې ستاسو چې څهٔ خوښه وي هغه كـوئ مـګـر د جـنـګ مـعـامـلې ماته پريږدئ. ځكه چې په فوځي كارروايو كښې جلدي كول نـامناسب دي. په اخر كښې به تاسو ووينئ چې زهٔ د دې جنګ انتظام څهٔ په ښهٔ شان سره كوم او كهٔ خير وي نو په مناسب موقع به ئې بالكل په كاميابۍ سره ختم كړو."

ايـلفنستن وائي چې "اګر كهٔ د درانو فوځ هم د خرڅ خوراک د وجې تنګ وۀ مګر د احـمـد شاه د صبر تحمل او د بيدارۍ په وجه به ډير مشكلات حل شول. او چونكې د خپل ټـول لښكر په هغهٔ باندې اعتماد وۀ او هغهٔ به ټولو هندوستانيانو ملګرو سره په ډيرې نرمۍ او خـوش خـلـقـۍ سره پيش راتلو په دې وجه د هغهٔ په كيمپ كښې د هيڅ قسمه بې چينۍ يا بد

دلي نۀ پيدا کيده. مگر د دې په مقابله کښې د مرهټه فوځ وۀ چې د جنګ د مصيبتونو نه بې حوصلې شوے وۀ ځکه چې هغوي به د دې ټولو مصيبتونو الزامونه په خپلو کمانډرانو لګول."

اخر يو ځل دا شان چل وشو چې د مرهټو د لس زره سورو يو رسالې د خوردونوش سامان د دوابې د ملک نه د ګوبند پنډت د کمان د لاندې د پاني پت کيمپ ته راوړو. عطائي خان پوپلزي د دهلي او د ميرټهـ په منځ کښې د احمد شاه په حکم ناساپه په هغوي حمله وکړه او هر څۀ ئې ترينه واخستل. په بله موقع د مرهټو د فوځ يوې دستې د دهلي نه خزانه راوړه هغه هم ترينه پښتنو په زور واخسته. په دا شان د مرهټو فوځ د جنګ په وړديدو ډير تنګ شو او نور انتظار د هغوي دپاره ناممکن وۀ.

د ايشياټک ريسرچز مؤرخ بيان کوي چې "په دې اخر وخت کښې بهو چې د مرهټو د فوځ لوے جرنيل وۀ ماته پخپل لاس باندې ليکلے د کاغذ يو پرزه د اعتبازي ملازم په لاس راوليږله په پرزه کښې ئې دا الفاظ ليکلي وو. اوس پياله تر سوکو ډکه شوې ده او د بلې يوې قطرې ګنجائش هم پکښې نشته کۀ چرې څۀ کولې شے (يعنې کۀ څۀ د صلح تجويز کيدے شي) نو وکړه يا کۀ نۀ وي نو ماله فوراً صفا جواب راکړه. د دې نه پس به د ليکلو او د خبرو موقع نۀ وي."

د صلح تجويز خو وړومبے نامنظور شوے وۀ او احمد شاه په هغه شرطونو چې کوم بهو پيش کړي وو مرهټو سره صلح ته تيار نۀ وۀ چنانچه په اوومه جنورئ 1761ء مرهټو د يو قطعي فيصله کن جنګ دپاره د خپل کيمپ نه په جنګي نظام کښې راووتل. د درانو فوځ د خپل روزانه معمول مطابق وسله واچوله او د نمر د ختو نه وړومبے جنګ ونښتو. د جنګ د نښتو نه لږ وړومبے د ايشياټک ريسرچز ليکونکے د احمد شاه ميدان جنګ ته راوتل دا شان بيانوي. " د نواب شجاعت الدوله هرکارو خبر راوړو چې مرهټه د خپل کيمپ نه راووتل، توپخانه ئې مخکښې ده او فوځ وروسته دے. د دې خبر په اوريدو سره نواب شجاعت الدوله سمدستي د بادشاه خيمې ته ورغے او خواجه سرا ګانو ته ئې ووئيل چې اعليٰ حضرت فوراً راويښ کړئ. زما ورسره ضروري کار دے. بادشاه فوراً راپاځيدو د خيمې نه بهر راووتلو او تپوس ئې ترينه وکړو چې څۀ حال دے؟ نواب ورته په جواب کښې ووئيل چې د خبرو وخت نشته سمدستي په اس سوريږه او فوځ ته د تيارۍ حکم وکړه. بادشاه ته به هميشه يو اس زين کړے د خيمې په خلۀ کښې ولاړ وۀ. هغه فوراً په دغه اس سور شو او چې په کومو جامو کښې وۀ هم په هغې کښې بهر راووتلو او پخپله ئې د خپل کيمپ په مخکښې تر يو کروهه پورې اس وځغلولو او فوځ ته ئې د تيارۍ حکم ورکړو. بيا هغۀ د نواب نه تپوس وکړو چې دا خبر چا راوړې دے؟ هغۀ ورته زما نوم واخستو بادشاه فوراً يو سړے په اوښ باندې زما د راوستو دپاره

راولیږلو. زهٔ لازم د سلام نه پس زما نه هغهٔ د دې خبرې د تفصیل تپوس وکړو. ما ورته په جواب کښې ووئیل چې مرهټه د خپل کیمپ نه راوتي دي او چې رڼا کیږي نو ستا په فوځ باندې به حمله شروع کړي. هم په دغه ساعت یو څو دراني سوارهٔ زمونږ په مخکښې تیر شول د لوټ مال د هغوي په اسونو باندې پروت وهٔ هغوي ووئیل چې دا مال مونږ د مرهټو د کیمپ نه راوړے دے او هغوي تېښتي. بادشاه ماته وکتل او وې وئیل چې په دې کښې څهٔ وایئ؟ ما ورته عرض وکړو چې لږ ساعت کښې به زما دروغ رښتیا معلوم شي. ما لا بادشاه سره خبرې کولې چې مرهټه قریباً یو نیم کروه د خپل کیمپ نه مخکښې راووتل او خپله توپخانه ئې قطار کړه او سمدستي ئې د پښتنو په فوځ ګوله باري شروع کړه. بادشاه دا وخت په اس سور چیلم څښلو. چې د توپو ډزې ئې واؤریدې نو چیلم ئې پریښودو او په ډیرې دلجمعۍ سره ئې نواب ته ووئیل چې بیشک ستا د نوکر خبره بالکل رښتیا ده. هغه بیا فوراً خپل وزیر اعظم شاه پسند خان راوبللو وغیره وغیره.

د پاني پت د دې جنګ ډیرو مؤرخینو په تفصیل سره حالات لیکلي دي مګر د هغه ټولو خلاصه دا ده چې د پښتنو د فوځ په قلب کښې روهیله او د پوپلزو درانو دسته او د بادشاه د خپل محافظ فوځ یو ډویژن وهٔ. مرهټو د خپلو توپو او د فوځ ټول زور په دې قلب باندې راوستو. او د یوې سختې ګوله بارۍ نه پس د مرهټو ټولې رسالې یو دم ډیره سخته حمله وکړه. د درانو د قلب فوځ د څهٔ مقابلې نه بس بالکل مات شو. او باوجود د دې چې احمد شاه وزیر اعظم ډیر کوششونه وکړل ولې مرهټه د پښتنو په صفونو کښې راننوتل او د قلب لښکر ئې بالکل خور اور کړو. هم دغه د ایشیاټک ریسرچز لیکونکے وائي چې "د نواب شجاعت الدوله لښکر د پښتنو د قلب شاته ولاړ وهٔ او چونکې د هغهٔ مخکښې ګردوغبار ډیر زیات وهٔ په دې وجه هغهٔ ته هیڅ پته نهٔ لګیده چې څهٔ کیږي مګر چې څهٔ وخت هغهٔ ته معلومه شوه چې ناساپې د ډزو دزهار او د خلقو شور او د اسونو او د سورو ترپار کم شو نو زهٔ ئې هغه طرف ته ولیږلم چې وګورم چې څهٔ چل دے؟ زهٔ چې هغه ځاے ته ورسیدم نو وزیر اعظم مې ولیدو چې د خلې نه د غصې او د قهره زګونه غورځوي او پښتنو ته چغې وهي چې بې غیرتو مهٔ تښتئ زهٔ مو پرېښودم او تاسو ځئ، زمونږ وطن خو ډیر لرې دے اشنایانو کوم خوا تښتئ."

احمد شاه د خپلې محافظې دستې سره په ریزرو کښې ولاړ وهٔ. چې دا حال ئې ولیدو نو اس له ئې پونده ورکړه او پخپله د قلب امداد له ورغے. او د درانو میسره ئې د مرهټو د فوځ نه راتاؤ کړه او د تندر پشان په داسې زور په هغوي راپریوتو چې واپس سپاهیان لکه د زمرو د مرهټو په رسالې ورپریوتل. د دې حملې نتیجه بالکل فیصله کن وه. مرهټه اول ودریدل بیا دا شان وتښتیدل چې جرنیل بهو او د مرهټو ولي عهد سلطنت وسواس راؤ او قریباً ټول د

مرهټو لښکر څۀ په میدان جنګ کښې او څۀ په تیښته کښې تباه شول. او ټول میدان د احمد شاه په لاس راغے. دې جنګ د مرهټو طاقت په قطعي هندوستان کښې بالکل نیست و نابود کړو او د ډیرې مودې پورې بیا هغوي د دهلي طرف ته مخ راښکاره نۀ کړو.

د پاني پت د فتح نه پس ټول هندوستان احمد شاه ته خوشے پاتې شو کۀ چرې احمد شاه دا وخت په هندوستان کښې خپل سلطنت قائم کړے وے نو لکه څۀ رنګ چې بابر د پښتنو نه د هندوستان حکومت اخستے وۀ دغه شان به پښتنو بیا د مغلو نه خپله بادشاهي واپس اخستې وه. په دغه زمانه کښې د فیرنګیانو قوم په بنګال او مدراس کښې وړې وړې ابادۍ د تجارت په خاطر ابادې کړې وے. کۀ چرې د احمد شاه غوندې مضبوط او قابل سړي په هندوستان په بوسیده حکومت کښې نوې وینه ور اچولے وے نو غالباً چې د دریو څلورو سوؤ کالو پورې به بل هیڅ قوم د پښتنو برخلاف په هندوستان کښې سر نۀ وۀ وچت کړے. مګر هغۀ غټه غلطي وخوړه چې د دهلي حکومت هغۀ بیا مغلو ته پریښودو. د دې زمانې مغلیه خاندان کښې د هیچا د مقابلې طاقت نۀ وۀ او د جنګ د هنر نه هغوي د ډیرې مودې نه نااشنا شوي وو. او لکه چې څرنګ د شاه حسین زمانه کښې د ایران ټول امرا، وزراء او د پورته طبقې خلق عیش پسند رشوت خوارۀ او بدچلن شوي وو د هغوي د کمزورۍ او د بد نظمۍ په وجه د ملک په هر طرف اړے ګړے وۀ. او د هرې صوبې حاکم رشوت خور، زناکار او بدعمل وۀ. سپاهیانه زندګي هغوي د ډیرې مودې نه پریښې وه او د رعایا د بهبودۍ او د هغوي د ارام ورسره هیڅ فکر نۀ وۀ پاتې شوے. ډاکې او رهزنۍ هر طرف ته جاري وے. صرف د احمد شاه او د هغۀ د پښتنو سردارانو مضبوط لاس دا وخت په هندوستان کښې په باقاعده نظام حکومت قائمولے شو. کۀ چرې هغۀ لکه د بابر پخپله په دهلي کښې پاتې شوے وے او د قندهار او باقي افغانستان حکومتونه ئې خپلو نورو سردارانو ته سپارلے وے نو هندوستان به د راتلونکې زمانې د خانه جنګو، بادشاګردو او د غیرو قومونو د غلامۍ نه بچ شوې وے. مګر هغۀ خپل زاړۀ مقبوضات د پنجاب او سرهند ځان سره پریښودل او نور مفتوحه ممالک ئې د هندوستان هغې حاکمانو ته ورکړل چې چا هغۀ سره د مرهټو برخلاف مرسته کړې وه. په لاهور کښې هغۀ بلند خان او په سرهند کښې زین خان مومند خپل حاکمان مقرر کړل او د کال 1761ء په سپرلي کښې قندهار ته سره د خپلو سردارانو واپس شو.

د کال 1762ء په ابتدا کښې هغۀ ته بیا سکهانو په پنجاب کښې ځاے په ځاے فسادونه جوړ کړل او بې وجې ئې د هغۀ په رعایا باندې ډاکې او چپاؤنه هم وکړل. چړت سنګ د رنجیت سنګ نیکۀ ځان له په ګوجرانواله کښې فوځي قلاګانې واچولې. او درانو پښتنو سره ئې ډیرې جګړې وکړې. سکهان پخپلو حملو کښې دومره زړور شوي وو چې یو

ځل هغوي د سرهند په ګورنر باندې هم حمله وکړه مګر پښتنو او هنګن خان د مالير کوټلې هغوي تس نس کړل. دا قوم د مذهبي مجنونانو يو ټولګے وۀ او د څۀ مودې نه هغوي دا غوښتل چې په پنجاب کښې خپله بادشاهي قائمه کړي.

دې کښې شک نشته چې د سکهانو دې قوم ته وقتاً فوقتاً د ځنې ځنې مغل بادشاهانو او حاکمانو د لاسه تکليفونه وررسيدلي وو. مګر پښتنو هيچرې په هغوي په مذهبي خيال څۀ غم غرض نۀ وۀ کړے مګر سره د دې سکهانو د خپل لوټمار په مهمونو کښې هيچرې د پښتون او مغل تميز نۀ وۀ کړے او د پښتنو په رعايا باندې به ئې هم دغه شان په بې دردۍ او بې ترسۍ ډاکې وهلې. لکه د مغلو په بادشاهۍ. نو هر کله چې به احمد شاه پنجاب ته راغلو نو دا خلق به د هغۀ د فوځونو نه وړاندې وړاندې يو خوا بل خوا غرونو ته وتښتيدل. مګر څۀ وخت چې به د هغۀ فوځونه د پنجاب نه ووتل نو دا خلق به بيا د غرونو نه راکوز شول. او د خپل حکومت قائمولو کوششونه به ئې شروع کړل. چنانچه په فروري 1762ء کښې احمد شاه پخپله د هغوي د سرکوبۍ دپاره راغلے او هغوي له ئې د لدهيانې نه شل ميله نيلاؤ ته په يو مقام باندې دا شان سخت شکست ورکړو چې قريباً پنځويشت زره سکهان ئې په ميدان کښې قتل کړل. بيا د هغوي تعاقب پسې ځاے په ځاے خپل سرداران واستول او د پنجاب ميدانونه ئې ترې خالي کړل او هغوي بيا په غرونو کښې پناه واخسته.

هم په دغه ورځو کښې د سکهانو بعضو ټولو د الها سنګ د موجوده مهاراجه پټياله غور نيکۀ د مشرۍ لاندې د احمد شاه په يو جرنيل حمله وکړه مګر هغه په جنګ کښې ګرفتار شو او څۀ وخت چې هغه د احمد شاه مخکښې پيش کړې شو نو هغۀ د الها سنګ په مردانه قدوقامت او زړورتيا باندې دومره مئين شو چې هغه ئې په ډير عزت او احترام د پټيالې راجه مقرر کړو. د هغې نه پس احمد شاه بيا تر کافي مودې پورې په پنجاب کښې د انتظام قائمولو دپاره ديره وۀ. په دې موده کښې نورې هم ډيرې معرکې سکهانو سره ځاے په ځاے وشوې مګر په هر مقام باندې هغوي سخت شکستونه وخوړل. او د څۀ مودې دپاره د هغوي د دماغ نه په پنجاب کښې د حکومت قائمولو خيال ووتلو. هغه لا هم هغه شان په سرهند کښې مقيم وۀ چې په قندهار کښې د بغاوت خبر هغۀ ته راغے اوس د برسات موسم شروع وۀ او د پنجاب سيندونه تر سوکو سوکو ختلي وو په دې وجه هغۀ ته د قندهار په رسيدو کښې ډير تکليفونه وشو مګر هغۀ په هر صورت قندهار ته د رسيدو قصد کړے وۀ. نو هغۀ د ستلج په غاړه غاړه عين تر بهاولپوره پورې ښکته لاړو او د هغه ځاے نه د ملتان په لاره ډيره اسماعيل خان ته ورسيدو او د ګوملې په لاره غزني ته ورسيدو. د هندوستان د ګرمۍ او د غزني د يخنۍ په وجه د هغۀ فوځونو ته ډير نقصان ورسيدو. مګر چې څۀ وخت هغه قندهار ته ورسيدو نو دا بغاوت هغۀ په ډيره اسانتيا سره خور کړو.

د دې نه پس درویش علي د ایماکو سردار د هرات په خواوشا کښې سرکشي وکړه دا هم هغهٔ سمدستي دفع کړه. په کال 1763ء کښې هرکله چي احمد شاه د دې بغاوتونو په دفع کولو کښې مصروف وهٔ نو سکهانو بیا قریباً څلویښت زره فوځ سره په سرهند او مالیر کوټله باندې حمله وکړه. زین خان د سرهند ګورنر په دې جنګ کښې قتل شو او هنګن، خان د مالیر کوټله حاکم هم شکست وخوړو. او میدا ن کښې قتل شو. سکهانو د سرهند، قصور او د مالیر کوټلې علاقې لوټ کړې. او بیشماره پښتانهٔ ئ قتل کړل. د دې فتوحاتو نه پس سکهان سهارنپور ته راپورې وتل او د مرهټو او جاټانو په امداد سره ئ د دهلي محاصره وکړه.

د دې واقعاتو نه څهٔ لږه موده پس یعني په کال 1764ء کښې په احمد شاه باندې د جزام بیماري ولګیده او د دې بیمارۍ په وجه هغه دومره ناجوړه شو چي د هغهٔ صحت ئ بالکل تباه کړو. په کال 1767ء کښې هغهٔ بیا د سکهانو د سرکوبۍ دپاره پنجاب ته راغے. تر دې وخته پورې د هغهٔ ګورنرانو او حاکمانو سکهانو سره ځاے په ځاے جنګونه کول. مګر پوره طور سره د سکهانو په بیخ ایستلو کښې ئ کامیابي نهٔ وه حاصله کړې له دې کبله هغه پخپله دې ته متوجه شو. تر جهلم پورې هغه بې تکلیفه په ټوله علاقه قبضه وکړه او سکهانو له ئ ځاے په ځاے شکستونه ورکړل. او بیا ئ هغوي غرونو ته وشړل مګر هغه لا د دې مهم نه په مشکله خپل وطن ته رسیدلے وهٔ چي سکهان بیا په ډیر تعداد کښې د پنجاب میدانونو ته راکوز شول. او د کال 1768ء په اخر کښې د دریائے جهلم نه راپورې وتل او د روهتاس مشهوره قلعه ئ د درانو نه قبضه کړه. بادشاه بیا د هغوي برخلاف د راتلو تیاري کوله چي په ایراني خراسان کښې د شاه رخ زوي نصر الله مرزا چي د نادر شاه کړوسے وهٔ بغاوت وکړو. احمد شاه خپل زوے شهزاده تیمور یو لوي لښکر سره د دې بغاوت د دفع کولو دپاره ولیږلو. په دې معرکه کښې نصیر خان د بلوچو سردار پخپله شهزاده تیمور سره د امداد دپاره لاړو.

د پښتنو او د ایرانیانو فوځونه د مشهد په خواوشا کښې مخامخ شول او ډیر خونریز جنګ وشو اخر کار ایرانیانو شکست وخوړو او مشهد ته وتښتیدل. چونکې د امام رضا رضي الله عنه روضه په مشهد کښې وه له دې کبله پښتنو په مشهد حمله ونهٔ کړه بلکې محاصره ئ شروع کړه. د څو میاشتو محاصره کیدو نه پس ایرانیان مجبور شول او صلح ئ وکړه. شاه رخ مرزا خپله لور تیمور له په نکاح ورکړه او د احمد شاه فوځ ته ئ د یو امدادي فوځي دستې ورکولو اقرار وکړو. د دې بغاوت د ورکولو نه پس د احمدشاه صحت نور هم ډیر خراب شو او د جزام په وجه هغهٔ په خپله په فوځي معرکو کښې ښه حصه نهٔ شوه اخستے. او تر 1773ء پورې هغهٔ په خپل صدر مقام قندهار کښې ارام وکړو. چونکې هغه د سلطنت د

امور انتظامي کښې هم اوس خپل لیاقت او قابلیت نهٔ شو استعمالولې د دې دپاره هغهٔ وزراء او امـراء راجمع کړل او د هغوي په وړاندې ئې شهزاده تیمور خپل دویم زوی ولي عهد سلطنت او د افغانستان د تاج و تخت وارث مقرر کړو.

وائـي چې د پښتنو سرداران د احمد شاه په دې کارروایی باندې ناراض شول. او اګر چـې د احمد شاه ډیر لوی احترام د هغوي په زړونو کښې وهٔ او د هغهٔ فیصلو ته به ئې د ولي الله د فیـصـلـو په نظر کتل مګر په دې موقع ئې هغهٔ ته په ډیر ادب دا درخواست وکړو چې د خپل جـانشیـن پـه انتـخـاب کښـې زمونږ نه رائې ولې وانهٔ خستې شوه. او سلیمان چې د احمد شاه مشـر زوی وهٔ هـغـه ولـې ولیـعهد مقرر نهٔ کړې شو. بادشاه ورته په جواب کښې ووئیل چې د تیـمـور پـه انتـخـاب کښې زما خپل ذاتي غرض او مدعا نشته. زما اصلي مدعا او غرض خو د خلقو ښیګړه او بهتري ده بیا هغهٔ دې جرګې ته ووئیل چې :

" دې کښـې شک نشتـه چـې تیـمـور د سـلیـمـان نه کشر دی مګر هغه د خپل ورور سـلیـمـان پـه نسبـت د حـکومت زیات قابل او لائق دی. سرداراتو ووئیل چې د دې ثبوت څهٔ دی؟ احـمـد شـاه ورتـه پـه جـواب کښـې ووئـیـل له سلیمان نه هیچرې هم د پښتنو قبائل او د هـغـوي مشـران راضـي نـهٔ دي پاتې شوي د طبیعت نه هغه ډیر سخت دی. او په زړهٔ بې رحمه دی. پـه هـغهٔ کښې دور اندیشي نشته او ملک کښې د بغاوت او د فساد د لرې کولو قابلیت هـم نـهٔ لـري د دې نـه علاوه هغه سردار زوال بیګ چې پښتون وهٔ قتل کړی دی. د څهٔ بحث مباحثې نه پس سرداران د تیمور په ولیعهد کیدلو رضا شول او هغه د دوي په منظوری ولیعهد سـلـطـنت مقرر شو. هر کله چې احمد شاه په سردارانو باندې د تیمور جانشیني تسلیم کړه نو هـغهٔ پخپله کوه سلیمان کښې طوبیٰ ته چې د اچکزو درانو علاقه ده د کال 1773ء په سپرلي کښې لاړو هغه ځای په نسبت د قندهار زیات سوړ دی. او آب و هوا ئې خوشګواره ده. د دې ځـای نـه بـاوجـود د بیـمـاری هغهٔ د سلطنت د نظام نګراني کوله. مګر د هغهٔ بیماري ورځ تر ورځ زیاتیدله او اخر په جون 1773ء کښې د مرغې په مقام هغه وفات شو.

وړومبی د دې نه مونږ نور مخکښې تاریخې واقعات بیان کړو په دې مقام د احمد شاه مـغـفـور و مـرحـوم پـه صفتونو او خصلتونو باندې یوه مختصره تبصره وکړو. احمد شاه قریباً پنځویشت کاله د پښتنو بادشاه وهٔ. د هغهٔ ذاتي اخلاق نهایت پسندیده او ښهٔ وو. کومې بدی او وران کـارونـه چـې پـه دغـه زمـانـه کښې په اکثر سلاطین مشرق کښې بیاموندې شو د هغې ټـولـو نـه هغه بالکل صاف او پاک وهٔ. په دنیاوي معاملو کښې نهایت راستباز او په لوظ قول کښې ډیر پوخ وهٔ. خپل پنځهٔ واړه وخته مونځ به ئې باقاعده کولو او د هیڅ نشې عادي نهٔ وهٔ. د هـر قسم مـنـافقت، حرص، لالچ او ظلم نه د هغهٔ لاسونه صاف وو. په قومي معاملاتو کښې هـغـه پـخپـل قام باندې شیدا وهٔ. د هغهٔ د ټولې ژوندګی مقصد دا وهٔ چې پښتانهٔ دې ازاد وي او

هغوي دې د ژوندو قومونو په صف کښې شامل وي. احمد شاه به پخپل سلوک کښې د پښتون لفظ نۀ صرف د هغه خلقو دپاره استعمالولو چې په اصل به ئ ځان ته پښتانۀ وئيل بلکې هغۀ به ايماق، بلوچ،او نوروقبائيلوته چه د چا ژبه پښتو وه پښتانۀ وئيل.(فيرير).

هغۀ خپل وليعهد ته چې وصيت کولو نو په هغې کښې ئ يو نصيحت ورته دا کړے وۀ چې د هيڅ انسان پوزه او غوړونه دې نشي پرې کيدے. درانو او نورو قبائلو ته به هميش هغۀ په خپلو کښې د اتفاق او محبت ساتلو تلقين کولو. په پښتنو کښې ښځو له د طلاق ورکولو رواج هغۀ ډير بد ګڼلو او د مالک نه ئ د خپل غلام قتلولو اختيار واخستو. بادشاه ته په دربار کښې ټيټيدل او زمکه ښکلول هغۀ شرک ګڼلو او حکم ئ کړے وۀ چې هر سړے دې بادشاه ته نيغ په تندې لاس ړدي. او په دې طريقه دې ورته سلام کوي. اکثر به ئ د علماؤ او د فضلاؤ مجلسونه په دې غرض رابلل چې هغوي نه ځان په مذهب او په طبعياتو او نورو علومو باندې واقف کړي. د حکومت د انتظام دپاره هغۀ په خپله خپل ځان او ټول امراء او وزراء خپل زامن او عزيزان د هغې قانون ماتحت ګڼل. د هغې قانون په نفاذ کښې به د ويښتۀ هومره سستي او لا بې انصافي هغۀ ډير سخت جرم ګڼلو. فوځونو له به هغۀ تنخواه پخپل لاس ورکوله. او د ملک د ماليې نه هغۀ يو پيسه د خپلو ذاتي اخراجاتو دپاره نۀ اخستله. صرف د جنګونو په مال غنيمت باندې د هغۀ او د هغۀ د کور د خلقو ګزاره وه. د احمد شاه نوم د پاني پت د فتح په وجه په تمامه ايشيا کښې وچت شو. او د پښتنو نوم بيا د هندوستان په هر لوري کښې خور شو. هغه دومره رحمدل وۀ چې تر څو پورې به د هغۀ سلطنت په خطره کښې نۀ وۀ نو د غټو جرمونو مجرمان چې چا به د هغۀ برخلاف څۀ جرم کړے وۀ هم به هغۀ نۀ قتلول. د قبائلو په منځکښې په اندروني جنګونو کښې به هغۀ د يو معمولي پښتون په شان جرګې او روغې کولې. د رعايا د رائ عامه نه به هغۀ هر وخت ځان پوره واقف ساتلو. او د پښتنو هرې قبيلې سره به ئ په ډيرې ازادئ او بې کبرئ سلوک او خبرې کولې. د پښتنو په ادبياتو کښې هغه د ډير قابليت خاوند وۀ. د هغۀ ډير شعرونه تراوسه پورې د يو ديوان په شکل کښې موجود دي. د عالمانو فاضلانو او د قابلو خلقو به هغۀ ډير قدر او خاطر تواضع کوله. او د هغوي د ازادانه رائ به ئ احترام کولو. په جنګ کښې هغه بيشانه ډير بهادر او د حوصلې خاوند وۀ. او اکثر به ئ ميدان جنګ کښې د خپل فوځ پخپله انتظام کولو. استقلال د مزاج چې پښتنو کښې کوم بياموندې شي په هغۀ کښې ډير زيات موجود وۀ. هيڅ مصيبت تکليف او مشکل به هغه د خپل مقصد نه نشو اړولے.

په مؤرخين يورپ کښې هر چا چې د هغۀ متعلق تاريخ ليکلے دے نو هغه د دې صفتونو قائل دے. فيرير يو فرانسيسي مؤرخ په خپل کتاب هسټري آف دې افغانز چې په اصل کښې په فرانسيسي کښې ليکلے دے او بيا په انګريزئ کښې ترجمه شوے دے، د

احمد شاه په حقله خپله رائ دا شان ليکي. " د احمد شاه عهد حکومت د هغې ښيګړو او خوشحالو دپاره مشهور دے چې کوم هغهٔ په ملک کښې پيدا کړې وے. په شاهي شان و شوکت کښې د هغهٔ د سادګی وضع قطع د خلقو په زړونو کښې د هغهٔ مينه پيدا کړې ده. چې څوک به هغهٔ ته ورنزدې کيدل د خلقو رسائي هغهٔ ته په اسانتيا سره کيدے شوه. او بغير د سخت کلامی نه به هغه عدالت په ډيره منصفانه اصولو سره هغې خلقو سره هم کولو چې څوک به د سخت کلامی مستحق وو. هر چا سره هغهٔ په صلح صفايئ وسيدلو، خلق به ئ رضا ساتل. او هيچا هم چرې د هغهٔ د فيصلې برخلاف شکايت نهٔ وهٔ کړے. هغهٔ د خپل سلطنت حدودات ډير وسيع کړي وو او د هغهٔ د مرګ په وخت کښې د هغهٔ د حکومت قطبي حد تر دريائے جيحون او د کافرستان تر غرونو رسيدلے وهٔ. د نيلاؤ حد ئ خليج عمان پورې وهٔ نمرخاتهٔ ته کوهستان، تبت، ستلج او دريائے سندهـ د هغهٔ حدود وو. او قبلې ته خراسان، ايران او کرمان پورې د هغهٔ د سلطنت حدود رسيدلي وو.

کوم نههٔ سرداران چې هغهٔ سره د نادر شاه په فوځ کښې يو ځاے ملګري تللي وو د هغوي يوه جرګه هغهٔ جوړه کړه او په هره يوه معامله کښې به ئ د هغوي نه مشوره اخستله. بغير د هغوي د منظورۍ نه به هغهٔ هيڅ لوے کار په سر نهٔ اخستلو. او کوم قول و اقرار چې به ئ هغوي سره وکړو هغه به ئ هم هيچرې نهٔ ماتولو. مختصر دا چې د هغهٔ طرز حکومت شخصي حکومت نهٔ وهٔ بلکي د متحده صوبه جاتي يو جمهوري نظام وهٔ چې هغه د هغې مشر وهٔ.

His reign was remarkable for the good which he spread around him and his generosity and simple and modest demeanour in the midst of courtly pomp made him loved by all who approached his person, he was easy access, and administered justice upon the most equitable principles, without a harsh word even to those who deserved it; he was conciliating, persuasive and no one even complained of the judgements that he gave. He greatly extended the limits of his Empire, which at the moment of his death was as follows : The Frontier to the north was defined by the oxus and the mountains of Kafiristan, to the south by the sea of Amman, to the east by the mountains of Tibat, the Sutleje and the Indus; and to the west by Khurasan, persia and Kirman...........

The nine Sardars who had served with him in the Army of Nadir formed a council which always consulted in questions of State. He adopted no measure of importance without their approbation and never failed in any promise that he made them. His Government in short resembled much more a federative republic of which he was the Head than an absolute monarchy. (Farrier)

په پښتنو کښې د موجوده قومي روح پيدا کونکے په حقيقت کښې احمد شاه وهٔ. په دې سلسله کښې د کرنل ميلسن رائ چې يو انګريز مؤرخ دے قابل ذکر ده : " د ټولو نه

زیاتي کوشش د احمد شاه دا وۀ چې زۀ هر یو کار له د قامولی رنګ ورکړم. هغۀ به وئیل چې زۀ ځکه بادشاه یم چې د پښتنو سلطنت قائم کړم، د پښتنو قومیت جوړ کړم او په ټول ملک کښې د پښتنو خیالاتو له رواج ورکړم. احمد شاه به همیش د پښتنو قبیلو نه هم د قومیت په نوم باندې د ملګرتیا سوال کولو. او هم په دې وجه هغۀ همیش د هغوي د امداد حاصلولو کښې کامیاب وۀ. په دې لویو لویو خیالاتو کښې د پښتنو قبائلو د همدردی او د اتفاق حاصلولو دپاره هغۀ د ابتدا نه په دې اصولو وچلیدو. چې د قبائلو مشران زۀ ځان سره په دې خیالاتو کښې ملګري کړم. د دې مقصد د حصول دپاره هغۀ د نهو مشرانو یوه جرګه په کل امور سلطنت کښې د مشورې دپاره جوړه کړه. وړومبے ځل هغۀ په دې جرګه کښې هم هغه نهۀ مشران مقرر کړل چې څوک هغۀ سرۀ د نادر شاه په فوځ کښې یو ځاے ملازمان وو. د دوئ د منظوری نه بغیر به هغۀ یو غټ کار هم نۀ کولو. مګر چونکې د هغۀ خیالات لوي وچت او د عزیزولی او د قومیت وو په دې وجه به دا جرګه همیش هغۀ سره متفق وه. د حکومت هم دغه اصول وو چې د هغۀ د طاقت او د کامیابی سبب شول. هم د دې اصولو په پریښودو سره د هغۀ نمسي خپل ځان تباه کړو لکه چې مخکښې به تاسو ته بیان شي. بادشاه کیدو سره هغۀ د پښتنو هم د دې قومي جذبې په نوم باندې د خپل قام نه د امداد سوال وکړو. کابل او غزنے لا هغه شان د ایران لاندې وو. ( د هغۀ سوال هغوي ته دا وۀ چې کابل او غزنے زمونږ پدري وطن دے. د ډیرې مودې نه هغه زمونږ نه جدا شوے دے) پکار دي چې هغه زمونږ د پلار نیکۀ په ملک کښې شامل شي.

Above all he (Ahmad Shah) endeavoured to impress upon every act the stamp of nationality. He was King to extend Afghan authority to found an Afghan nationality and spread Afghan Ideas. In all his dealings with the tribes it was to this spirit that he appealed and it was this appeal that assured his success.

The more certainly to carry the tribe with him in these great ideas Ahmad Shah made it from the outset a principle of his policy to gain in the first instance their chiefs. With this object he appointed a council of nine chiefs with whom to consult in all matters of State. In the first instance he nominated to this council the nobles who had served with him in the army of Nadir Shah. Without their consent he adopted no measure of importance. His ideas being always broad, aggressive, and essentially in the larger sense that consent was rarely if ever refused. This principle of Govt; was at once the cause of his power and of his success. It will be seen that the reversal of it ruined his grandson.

Scarely had he been crowned than he appealed to the national spirit. Kabul and Ghazni were in Persian hands. Kabul and Ghazni must be reunited to the parts of the fatherland whence they have long been severed.

(هسټري آف اُفغانستان مصنفه کرنل میلسن مخ ۲۷۷ او ۲۷۸)

بیا هم دغه مؤرخ په مخ ۲۹۲ باندې دا شان لیکي: " د احمد شاه لوے قابلیت دا وۀ چې هغۀ د پښتنو قبائل په یو ځاے منظم کړي وو. او هغۀ د هغوي نه یو قام جوړ کړے وۀ. کوم مشران چې هغۀ رضا نۀ کړې شو هغوي هغۀ مسخر کړل. د هرې قبیلې د مشرانو هغۀ یوه جرګه جوړه کړې وه. چې هغوي سره به هغۀ صلاح مشوره کوله او چونکې د هغوي په رائ باندې به هغۀ عمل کولو. په دې وجه به ټول قام د هغۀ د هر یو تجویز تائید کولو. احمد شاه فیاض، خوش خلقه او مستقل مزاج وۀ په دې وجه د هغۀ رعایا سره مینه وه.

The Cheif merit to be ascribed to Ahmad Shah is undoubtedly the consolidation of the Afghan tribes. He made them a nation. The chiefs whom he failed to conciliate be reduced. Forming council composed of a leading chieftain of each tribe consulting with its members, and often adopting their advice, he was able to consort measure which commended themselves to the general body. Generous, affable and resolute, he won the hearts of his followers, introduced and maintained order, where disorder had prevailed, and justified, by his internal administration, the epitaph engraved on his tomb. Ahmad Shah Durrani was a great King such was the fear of his justice that the lion and the hind lived peacefully together. The ears of his enemies were incessantly deafened by the noise of his conquest.

په هره علاقه کښې چې چرته بدنظمي او بدانتظامي وه هغۀ په هغې کښې انتظام او امن قائم کړو. او پخپل ملکي انتظام ئ د خپلې روضې د کتبې د لاندینې الفاظو صداقت ثابت کړو:

" احمد شاه درانے یو لوے بادشاه وۀ د هغۀ عدل او انصاف نه به خلق دومره ویریدل چې امزري او هوسۍ به په یو ځاے کښې په امن و امان وسیدل. د هغۀ د دشمنانو غوږونه همیش دپاره د هغۀ د فتوحاتو د شور نه کاڼۀ شوي وو."

آنریبل مانتهستورټ ایلفنسټن په خپل کتاب "د سلطنت کابل او د هغې د مقبوضاتو بیان" کښې د احمد شاه متعلق مفصله رائ داسې لیکي:

The character of Ahmad Shah appears to have been admirably suited to the situation in which he was placed. His enterprise and decision enabled him to profit by the confusion that followed the death of Nadir, and the prudence and moderation which he acquired from his dealings with his own nation were no less necessary to govern a warlike and indep[endent people, than the hold and commanding turn of his natural genius.

His military courage and activity are spoken of with admiration, both by his own subjects, and the nations with whom he was engaged either in wars or alliances. He seems to have been naturally disposed to mildness and clemency; and though it is impossible to acquire soverign power, and perhaps Asia, to maintain it without crimes, yet the memory of no eastern Prince is stained with fewer acts of

cruelty and injustice.

In personal character he seems to have been cheerful, affable and good natured. He maintained considerable dignity on state occasions, but at other times his manners were plain and familiar; and with the Durranies he kept up the same equal and popular demeanour which was usual with their Khans before they assumed the title of King. He treated mullahs and holymen with great respect both from policy and inclination. He was himself a divine and author and was always ambitious of the character of a saint.

His policy towards the different parts of his dominions was to rely principally on conciliation with the Afghans and Balouchs; with this difference between the nations, that he applied himself to the whole people in the first case, and only to the chief in the other .............

It has before been observed that Ahmad Shah did wisely in choosing to lay the foundation of a great Empire, rather than complete a small one. The countries under his Dominion extended at his death, from the west of Khurasan to Sarhind and from the oxus to the sea, all of which were secured to him by treaties, or by actual possession, and had his plans been persued, there is no doubt that a Government sufficiently strong to have secured its own stability, would soon and easily have been introduced through the whole of this great Empire.

Th character of Ahmad Shah's succession was, unluckily very different from his and it was in a great measure owing to the system of policy introduced by Taimoor, that the power of the Durranies first became stationary and has since declind.

د احمد شاه خوئ خصلت د هغې واقعاتو او د هغې زماني مطابق چې په کومه کښې هغه پيدا شوے وۀ ډير زيات موزون وو د نادر شاه د مرګ نه پس کومه بادشاه ګردي چې په ملک کښې پيدا شوې وه د هغې نه احمد شاه د خپل قابليت او د جرأت په سبب فائده واخسته او کوم اعتدال او عقل چې هغۀ په خپل قومي معاملاتو کښې زده کړے وۀ هغه په يو جنګجو او خودمختار قوم باندې د حکومت کولو دپاره هم دومره ضروري وۀ لکه چې خومره د هغۀ قدرتي ذهن دليري او جرأت وۀ.

د هغۀ خپل رعايا او هغه قومونه هم چې چا سره هغۀ جنګونه کړي وو او يا ئ ورسره معاهدې کړې وے دوې دواړه د هغۀ د فوځي شجاعت او د چا ق والي تعريف کوي. هغه طبعاً نرم دل او رحم طرف ته مائل وۀ او اګر چې شاهي طاقت حاصلول بغير د سختئ کولو نه ناممکن وي او په ايشيا کښې خو د هغې سنبالول بغير د ظلم نه مشکل دي مګر د بې انصافئ او د ظلم داغونه چې خومره لږ او کم د احمد شاه په لمن دي دومره لږ داغونه د يو بادشاه په لمن هم نشته.

پخپل ذاتي خوئ خصلت کښې احمد شاه بشاش طبيعت خوش اخلاق او نيک

خصلت وۀ. د دربار په موقع به هغۀ خپل شان و شوکت په ښه وجه ساتلو. مګر عام طور به د هغۀ سلوک د اولس خلقو سره ډير د سادګۍ او د اخلاص وۀ. او درانو سره هغه هم هغه د مساوات او د برابرۍ وضع اختيار کړې وه چې کوم عام طور باندې د هغوي په خانانو کښې د هغوي د بادشاهۍ د خطاب اخستلو نه وروستو بيا مونډې شوه. هغۀ به د علماؤ او د نيکو خلقو ډير عزت او حرمت هم طبعاً او هم د پاليسۍ په طور کولو. هغه پخپله هم يو عالم او ولي الله وۀ. صاحب تصنيف هم وۀ او د هميش دپاره به ئې په ځان کښې د بزرګانو د خوئ خصلت پيدا کولو کوشش کولو. د خپل سلطنت په مختلفو حصو کښې د هغۀ د حکومت اصول دا وو چې پښتنو او بلوچو سره هغۀ د خپلو تعلقاتو دارومدار په صلح او په رضامندۍ ساتلو. مګر په دې دواړو سره په سلوک کښې د هغۀ دومره فرق وۀ چې د پښتنو د قوم هر يو سړي سره به هغۀ د دوستۍ رويه شړله او بلوچو سره د هغوي د سردارانو په ذريعه.

دا مونږ وړومبے ذکر کړے دے چې احمد شاه د يو ورکوټي سلطنت د مکمل کولو په ځاے په ډيره هوښيارتيا سره د عظيم الشان سلطنت بنيادونه قائم کړي وو. د هغۀ د مرګ په وخت کښې د هغۀ د سلطنت حد په قبله تر خراسان او نمرخاتۀ تر سرهند پورې پروت وۀ. او د دريائے جيحون نه تر سمندر پورې خور وۀ. او په دې ټول ملک باندې لا د هغۀ خپله قبضه وه او د عهدنامو په ذريعه د هغۀ په سلطنت کښې شامل وو. او کۀ چرې د هغۀ په تجويزونو عمل شوے وے نو دې کښې هيڅ شک نشته چې د هغۀ په دې عظيم الشان سلطنت کښې به يو ډير ښۀ او مضبوط حکومت قائم شوے وۀ.

د بدقسمتۍ نه د احمد شاه د جانشين خوئ خصلت د هغۀ د خوئ خصلت نه بالکل بدل وۀ او کوم طرز حکومت له چې تيمور په خپل ملک کښې رواج ورکړے وۀ دا هم د هغې وجه وه چې د درانو طاقت وړومبے خو په ځاے ودريدو او بيا په زوال شو.

د دې ټولو مؤرخينو د رائ خلاصه دا ده چې احمد شاه په اصلي معنو کښې پښتون وۀ او د پښتنو د قوميت باني وۀ. د هغۀ په زمانه کښې غيرت او عزيزولی ته پښتو وئيلې شوه. نيک چلنی او مهمان نوازی، بهادری ته پښتو وئيلې شوه او هر يو نيک او ښۀ صفت ته د پښتنو تعريف او صفت وئيلے شو. د هغۀ خپله ژبه او د ټولو سردارانو د قوم ژبه پښتو وه. او د هغوي ټول خويونه او عادتونه د پښتنو وو. د عزيزولی ټکے هم د هغه زمانې نه شروع شوے دے او هم د دې عزيزولی په نوم باندې هغۀ ټول قومونه د ځان نه چارچاپيره راټول کړي وو. خو چې څۀ وخت تيمور د پښتنو عزيزولي د پښتو ژبه، د پښتنو خويونه، عادتونه او خصلتونه پريښودل او خپل ځان ئې د قبيلو نه جدا کړو او د خپل سلطنت د قيام دارومدار ئې د پښتنو په عزيزولی نه بلکې د غير خلقو په امداد وګڼلو نو د هغه وخت نه د پښتنو حکومت ورځ په ورځ کمزورے کيدل شروع شو.

# عهد تیمور شاه

تیمور شاه د مشهد په مقام په کال 1746ء د دسمبر په میاشت کښې پیدا شوے وۀ. هغه د خپل پلار احمد شاه په دربار کښې تربیت موندې وۀ او په اکثرو جنګونو کښې د هغۀ هم رکاب وۀ. لا هم هغه شان هلک وۀ چې هغه ورومبے پنجاب ته تللے وۀ او بیا د هغې نه پس په هرات کښې چې پکښې ایرانیان او فارسي بان خلق وسیږي ګورنر مقرر شو. ایلفنستن وائي چې تیمور په داسې حالاتو او واقعاتو کښې لوے شوے وۀ چې هغۀ ته په ښۀ شان سره د خپل ملک د خلقو د خویونو او عادتونو د زده کولو موقع په لاس رانغله او معلومیږي چې هغه د خپلې قومي ژبې نه هم پوره واقف نۀ وۀ.

د احمد شاه اتۀ زامن وو د ټولو نه مشر سلیمان مرزا، دویم تیمور مرزا، دریم شهاب مرزا، څلورم سنجر مرزا، پنځم یزدان بخش مرزا، شپږم سکندر مرزا، اووم دراب مرزا، اتم پرویز مرزا وۀ.

تیمور په هرات کښې وۀ چې هغۀ ته د احمد شاه د بیماری خبر ورسیدو هغه سمدستي د طوبيٰ معروف غرونو ته د هغۀ د لیدلو په غرض روان شو. ولې لا دې قندهار ته نۀ وۀ رسیدلے چې احمد شاه ورته حکم وکړوچې واپس خپل د هرات حکومت ته لاړ شه. تیمور دا حکم ومنلو او هرات ته واپس شو. په دې ورځو کښې تیمور د هرات او خراسان عین تر نیشاپور پورې د ټولې علاقې ګورنر وۀ. هرات ته د رارسیدو نه څۀ موده پس د خپل پلار د مرګ نه خبر شو. او دا ئې هم واؤریدل چې سلیمان په قندهار کښې د خپلې بادشاهۍ اعلان وکړو. چونکې د شاه ولي خان چې د احمد شاه وزیر اعظم وۀ لور په سلیمان وادۀ وه په دې سبب شاه ولي خان د سردار جهان خان او د نورو بعضو درانو سردارانو په مصلحت سلیمان په تخت کښینولو. د سلیمان د تخت نشیني واقعه په دې شان شوې وه چې د احمد شاه د مرګ نه پس د قوم د مشرانو یوه جرګه په قندهار کښې راغونډه شوه. په دې جرګه کښې شاه ولي خان د سلیمان نوم د بادشاهۍ دپاره پیش کړو ولې عبدالله خان پوپلزي چې د احمد شاه په عهد حکومت کښې دیوان بیګي وۀ او علاؤه د دۀ نه نورو مشرانو هم د تیمور نوم پیش کړو. د وږد بحث مباحثې نه پس دا جرګه بغیر د څۀ فیصلې کولو نه خوره شوه. بیا شاه ولي خان په خپل اختیار سلیمان بادشاه کړو ولې عبدالله خان او د هغۀ ملګرو د احمد شاه په وصیت عمل وکړو او خپل قامونه ئې د تیمور شاه په طرف کړل. تیمور د سلیمان په مقابله کښې زیات قابل، نرم دل او بهادر شهزاده وۀ. په سلیمان کښې دا یو صفت هم نۀ وۀ او پخپل قام کښې هم هردلعزیز نۀ وۀ. هم په دغه وجه احمد شاه تیمور خپل جانشین مقرر کړے وۀ.

هر کله چې تیمور د سلیمان د تخت نشیني نه خبر شو نو هغهٔ په قندهار باندې سره د یو لښکره چې په هغې کښې دراني، هزاره او ایماک شامل وو راروان شو. شاه ولي خان وزیر اعظم د خپل زوم دپاره د څهٔ لښکر د یو ځاے کولو کوشش وکړو مګر هغه ناکام شو او خلق ټول د تیمور شاه ملګري شول. وزیر چې دا ولیدل نو د تیمور کیمپ ته د اطاعت قبلولو دپاره راغے مګر چونکې د هغهٔ برخلاف د بغاوت سرغنه هم شاه ولي خان وهٔ له دې کبله تیمور د هغهٔ د کتلو نه انکار وکړو. څهٔ وخت چې شاه ولي خان د تیمور کیمپ ته راورسیدو نو په هغهٔ باندې د قتل الزام ولګیدو په دغه الزام کښې تیمور هغه ګرفتار کړو. د مقدمې سماعت وشو او په قصاص کښې د قتل سزا ورته تجویز شوه. چنانچه هغه فوراً په قصاص شو. د دې قتل په وجه د درانو لویه حصه د تیمور نه ناراضه شوه.

د دې نه پس تیمور مرزا سره د لویو لویو سردارانو، اراکین سلطنت او د ټول لښکر په ډیر شان او شوکت په قندهار کښې داخل شو او بالاتفاق ټول قام بادشاه کړو. تیمور د تخت نشینی نه پس وړومبۍ غلطي دا وکړه چې هغهٔ خپله دارالخلافه د قندهار نه کابل ته منتقله کړه. د دې وجه دا وه چې هغه د قندهار د خلقو نه د سلیمان مرزا په ملګرتیا خفه شوے وهٔ. د دې نه علاوه چې کوم دراني قبائل چې د سلیمان په طرف داری کښې ودریدلي وو هغه هم د قندهار په خواوشا کښې وسیدل. د دې نه پس به هغهٔ اتهٔ میاشتې په کابل کښې تیرولې او څلور میاشتې به ئې په پیښور کښې تیرولې. هر کله چې تیمور کابل ته راورسیدو نو د هغهٔ اول فکر دا وهٔ چې د خپل حکومت بنیادونه مضبوط کړي اګر چې هغه په خپله درانے وهٔ مګر په درانو د هغهٔ ډیر کم اعتبار پاتې شوے وهٔ. قندهار چې د درانو مرکز وهٔ هم په دې وجه هغهٔ پریښودو او کابل چې د تاجکو نه ډک وهٔ هم په دغه وجه هغهٔ خوښ کړو. د هغهٔ په زړهٔ کښې دا شک وهٔ چې چونکې دراني زورور او په شمار کښې ډیر دي او هر کله چې هغوي یو بادشاه ته متفق شي نو هغه د تخت نه کوزولے شي.

د دې نه علاوه هغوي سرزوره او سرکش خلق دي او په اسانه باندې د حکومت دبدبه او رعب منونکي نهٔ دي. د دې برخلاف تاجک قوم ډیر نرم او د افغانستان په رعایا کښې ډیر فرمانبردار خلق دي. هغوي به زما د حکومت بنیادونه د خپل متابعت په وجه مستحکم کړي. هم د دې اصولو په ماتحتی کښې هغهٔ خپل مشیر کار قاضي فیض الله چې د دولت شاهي قبیلې سړے وهٔ مقرر کړو. او لطف علي خان چې د ایراني خراسان وسیدونکے وهٔ خپل وزیر مقرر کړو. نو د درانو د قبائلو مشرانو اګر چې په انتخاب کښې دست اندازي ونکړه او کوم کوم خلق چې د وړومبے نه د احمد شاه په عهد حکومت کښې مشران وو هغه ئې په خپل خپل ځاے پریښودل. او د حکومت اختیارات ئې د هغو خلقو په لاس کښې ورکړل چې کوم د هغهٔ دلاسه لوې سړي شوي وو او قومي اقتدار ئې لږ وهٔ. اګرچې د درانو د قبیلې

سردارانو ته یې ښې لوړې لوړې عهدې ورکړې مګر هغوي یې ټول کابل کښې نزدې د خپل ځان سره د دې دپاره وساتل چې هغوي د خپلو قبیلو نه لرې وي او هغۀ ته څۀ فساد جوړ نۀ کړي. چنانچه هغۀ علاوه د قاضي فیض الله نه پائنده خان د حاجي جمال خان زوی د بارکزو د قبیلې سردار مقرر کړو او هغۀ له یې د سرفراز خان خطاب ورکړو. سردار دلاور خان له یې د مدد خان لقب ورکړو. او سردار سرداران خطاب یې هم ورله ورکړو. نورمحمد خان هغۀ د مالیاتو د محکمې مشر کړو او التفات خان چې د خواجه سراګانو مشر وۀ هغه یې د خزانې افسر او د بادشاه د جواهراتو محافظ مقرر کړو.

د دې سردارانو په جرګې سره به هغۀ د حکومت امور فیصله کول. فیریر وائي چې دې وزیرانو ته تیمور عام حکم ورکړو چې د رعایا هر یو کس سره د انصاف، عدل او نرمۍ سلوک کوئ مګر هغوي ته یې دا هم ووئیل چې د سلطنت په کاروبار کښې د قبیلو د مشرانو نه ډېر کم امداد اخلئ. بادشاه خپل محافظ فوځ د اسحاق زي قبیلې نه چې د درانو په قبیلو کښې یوه وړه او معمولي قبیله وه برتي کړه. د دې نه علاوه هغۀ دولس زره د قزلباشو رساله هم د سردار محمد خان بیات د مشرۍ د لاندې په خپل محافظ فوځ کښې شامله کړه. هر یو وزیر ته د یو خاص تعداد نه د زیاتي سړو ساتلو حکم نۀ وۀ. د احمد شاه په زمانه کښې چې کومو صوبو کښې هم د هغې علاقې د خلقو مشران حاکمان شوي وو د هغوي نه د هغۀ د بغاوت او د سرکشۍ هیڅ قسم خطره نۀ وه. د درانو لوی لوی سرداران چونکې هغه ټول په دارالخلافه کښې ساتلي وو او هغوي سره د خپلو قبائلو هیڅ قسم فوځ موجود نۀ وۀ. د دې دپاره هغۀ د هغوي د سازشونو او بغاوتونو نه په امان وۀ.

هغۀ د مالیاتو محکمې ته خاص توجه وکړه او د هغې د بندوبست او انتظام یې په ډېره ښه پیمانه باندې قائم کړو. هغۀ خپل ذاتي اخراجات کم کړل مګر د فوځونو تنخواه او د ملازمانو مشاهرې به یې پخپل وخت او پوره پوره ادا کولې. مالیه به په ښۀ شان او باقاعده ټولیدله او اخراجاتو حساب کتاب هم باقاعده جوړ کړے شو. نتیجه دا شوه چې په لږه موده کښې د حکومت خزانه ډکه شوه.

د قبائلو لښکرونه هغۀ لرې کړل او صرف تنخواه دار سپاهیان یې په دارالخلافه کښې وساتل. چې د هغوي نور امور سلطنت او عام رعایا سره هیڅ تعلق نۀ وۀ. په دې شان هغۀ د سلطنت وزراء په خپل تسلط او اقتدار کښې وساتل. او ورو ورو یې د قبائلو د مشرانو نه په علاقو باندې د حکومت کولو اختیارات واخستل. او د هغوي په ځاے یې خپل تنخواه دار ملازمان مقرر کړل. د حکومت په دې طریقه کښې د عامو پښتنو خپل بادشاه سره د عزیزولۍ او د قومیت تعلقات ورو ورو کم شول. اګرچې په دې ذریعه افغانستان کښې دننه عام طور باندې امن و امان قائم شو او د هغۀ په عهد حکومت کښې یو څو سازشونه او یو څو

مـدعيـان سـلـطنت هم پيدا شو. ولې بادشاه هغه په خپله بيدار مغزئ او قابليت د خپل تنخواه خور فوځ په ذريعه ډير زر دفع كړل. بعضې بعضې لرې صوبو هم څۀ موده پس د خودمختارئ كـوشـش شـروع كـړو. د بـادشـاه او د نظام سلطنت د قبائلو نه د جدا كيدو او د لرې كيدو په وجه د پښتنو مينه او تعلق د حكومت په حفاظت كښې د احمد شاه د زمانې په نسبت كم شو. نتيـجـه دا شـوه چـې د قـام خلقو بادشاه او د هغۀ وزيران پردي گڼل. او كومه دلچسپي چې به هغوي وړومبے د پښتنو د سلطنت د ترقي په معاملاتو كښې اخستله هغه پاتې نۀ شوه. د پښتنو د قـوميت او عزيزولئ د شيرازې د انتشار اگر چې د تيمور شاه په زمانه كښې ډير زيات ظاهر او ښكاره نۀ وو مگر د هغۀ د حكومت هرې ورځې به د پښتنو قوم د بادشاه او امور سلطنت نه زياتـې بيـلـول. تر دې پورې چې د هغۀ د جانشينانو په وخت كښې حكومت او عام خلق جدا جـدا څيزونـه شـول. او هـغـه عـظيم الشان سلطنت چې احمد شاه د پښتنو په عزيزولئ او په قـوميت باندې اخستے وۀ هغه د دشمنانو د لاسه ټكړې ټكړې شو او كوم جمهوريت چې هغۀ پخپله قوم كښې جاري كړے وۀ هغه بالكل په شخصي حكومت باندې بدل شو.

تيـمور شاه طبعاً د صلح طرف ته مائل وۀ او د دې وجه زياتې دا وه چې د احمد شاه په نسبـت هغه زيات ارام پسند وۀ. د هغۀ په قابليت او شجاعت كښې څۀ شک نۀ وۀ ولې سره د دې صـفـتـونو هغۀ شراب هم څښل او د پښتنو د عام عادت نه خلاف عيش پسند هم وۀ. تر يو حـده پـورې سختې او تريخ والے چې د هر كامياب حكومت د چلولو دپاره لازمي څيزونه دي هـغـه هـم پكښې ډير كم وو. د هغۀ د دې امن پسندئ اثر په مفتوحه ممالكو باندې ډير خراب پـريـوتـو. او پـه دې سبب هـغـوي خپل ځان د حكومت نه د ايستلو كوشش وكړو. د ټولو نه وړومبے د خـراسـان خـلـقـو بغاوت وكړو. شاه رخ مرزا چې د هغه ځاے بادشاه وۀ ذاتي طور بـانـدې خـو د تيـمور شاه په باجگزارئ باندې بالكل رضا وۀ مگر څۀ خلق چې د هغۀ دشمنانو سـره يـو ځـاے شـول او هـغـه ئې د مشهد نه وويستو. تيمور شاه ديرش زره فوځ د مدد خان په سـالارئ كښـې د هـغـوي د سـر كـوبـئ دپـاره وليـږلـو. او دې فوځ بيا شاه رخ مرزا په تخت كښـيـنـولـو. مـدد خـان د دې مهـم نـه پس لا كابل ته نۀ وۀ رارسيدلے چې بيا دې خلقو بغاوت وكړو او د مشهد چـارچاپيـره ټـولـه عـلاقـه ئې لـوټ كـړه. تيـمور شاه بيا مجبوراً مدد خان وروليـږلـو. بـاغيـان دا ځل د چنارانو په قلعه كښې قلعه بند شول. مدد خان د هغوي محاصره وكـړه او څۀ لږه موده پس باغيانو اطاعت قبول كړو ولې مدد خان لا د كابل په لاره كښې وۀ چې خراسانيانو دريم ځل د شاه رخ برخلاف نشان وچت كړو. دا ځل تيمور شاه يو بل فوځ د احـمـد خان نورزي چې د نصر الله خان زوے وۀ د سالارئ لاندې وليږلو. دې لښكر دا ځل د خراسان بغاوت دا شان دفع كړو چې د تيمور په ژوند كښې هغوي بيا سر وچت نۀ كړو.

د تيـمور بـرخـلاف انـدروني بغاوت د عبدالخالق خان د هغۀ د تربور وۀ چې قريباً په

کال 75-1774ء کښې هغهٔ کړې وهٔ، عبدالخالق د درانو او غلجو یو ډیر لوے لښکر چې د شاهي فوځونو نه هم په شمار کښې زیات وو تیار کړو مګر د بادشاه فوځ منظم وهٔ او د تجربه کارو افسرانو د لاندې وهٔ پس کهٔ چرې عبدالخالق سره سم په میدان کښې هم جنګ شوے وے نو غالباً چې هغهٔ به شکست خوړلے وهٔ. مګر عبدالخالق د فوځ دوه سرداران سره د خپلو قبیلو د بادشاه په فوځ کښې شامل شول. عبدالخالق په جنګ کښې شکست وخوړو، ګرفتار شو او ړوند کړې شو.

په کال 1779ء کښې د چمکنو صاحبزاده صاحب فیض الله خان د خلیلو مشر او ارسلا خان د بر مومندو مشر د تیمور شاه د قتل او د شهزاده سکندر شاه چې د احمد شاه شپږم زوے وهٔ په تخت د کښینولو سازش وکړو. په دغه موده کښې تیمور شاه په پیښور کښې د بالاحصار په قلعه کښې مقیم وهٔ. فیض الله خان د تیمور شاه نه په پنجاب باندې د حملې کولو په بهانه د یو لوے لښکر د تیارۍ اجازت غوښتې وهٔ. په دې لښکر کښې هغهٔ ډیر افریدي او شنواري جمع کړل. څهٔ وخت چې د هغهٔ سازش مکمل شو نو هغهٔ خپل فوځونه د پیښور بالاحصار ته په دې بهانه باندې بوتلل چې زهٔ ئې بادشاه ته ښیم. هر کله چې هغه د بالا حصار دروازې ته ورسیدو نو د څوکۍ سپاهیان ئې ټول قتل کړل او ټول لښکر ئې دننه کړو. شاهي لښکر دا وخت د بالاحصار نه بهر په میدان کښې پروت وهٔ. او چونکې غرمه وه ټولو خلقو د ارام دپاره سترګې پټې کړې وے. د خوش قسمتۍ نه تیمور شاه اودهٔ نهٔ وهٔ. هر کله چې هغهٔ د خپلې کمرې نه بهر په قلعه کښې شور او چغې واؤریدې نو د دریچې نه ئې بهر وکتل. پوهه شو چې زما د قتل بندوبست دے. هغه فوراً د خپل محل دویم چت ته وختلو او د هغه ځاے نه ئې خپلې محافظې دستې ته پټکے وخوځولو او د دې حال نه ئې خبر کړل. شاهي فوځ او څهٔ دراني چې موجود وو راجمع شول او د فیض الله خان په سرو ئې قتل عام شروع کړو. فیض الله خان او د هغهٔ زوے دواړه ګرفتار شول او اګرچې ډیر ئې په عذاب کړل مګر هغوي خپل نور ملګري ونهٔ ښودل او اخر کار هغوي ئې قتل کړل.

د چمکنو د صاحبزاده صاحب برخلاف هم د بادشاه ډیر شک وهٔ او قریب وه چې ئې ګرفتار کړې وے مګر د دربار سردارانو ټولو مخالفت وکړو او په دې وجه هغه بچ شو. د فیض الله خان په سرو کښې ډیرو لږو خلقو ته دا معلومه وه چې مونږ فیض الله خان د څهٔ دپاره بیائي. او څهٔ وخت چې هغوي بالاحصار ته راورسیدل او د فیض الله خان په نیت پوهه شول نو په هغوي کښې ډیرو بالاحصار ته د دننه کیدو نه انکار وکړو. په دې خلقو کښې د هغهٔ ورارهٔ هم شامل وهٔ او څهٔ وخت چې هغه په محل کښې د دننه ورتلو نه انکار وکړو نو هغه ئې پخپل لاس قتل کړو.

د ارسلا خان د نیولو تیمور شاه ډیر کوشش وکړو مګر هغه تښتیدلے وهٔ. تیمور شاه د

مومندو په غرونو کښې هغه نشو گرفتارولې لیکن د بدل اخستو جذبه په هغۀ کښې په دې وجه مړه نۀ شوه. پس تیمور شاه په فریب د هغۀ د رانیولو کوشش وکړو. هغۀ به په دربار کښې او بهر خلقو ته وئیل چې ما ارسلا خان بخښلے دے. دا خبرې ارسلا خان ته هم ورسیدې. د ډیرې مودې نه پس تیمور شاه ارسلا خان ته په قرآن مجید باندې مهرونه ولګول او ور وائ ستول او ورته ئ ولیکل چې ما تۀ بخښلے ئ. زۀ درته هیڅ نۀ وایم. ارسلا خان دوکه شو او پیښور ته راغے. هغه تیمور شاه گرفتار کړو او هم په دغه شپه ئ قتل کړو. ټول پښتانۀ عام طور باندې، په دې عهد شکنۍ او د قسم په ماتولو سخت ناراض شول.

ایلفنستن وائي "چې څۀ وخت تیمور شاه د ارسلا خان د گرفتارولو کوشش کولو نو په یوه موقع باندې د هغۀ ټول ملګري د هغۀ نه جدا شول او هغه د اتمان خیلو علاقې ته وتښتیدو. څۀ وخت چې ارسلا خان د اتمان خیلو وړومبي کلي ته ورسیدو نو د کلي ټول مشران د تیمور شاه د ویرې نه ارسلا خان له بهر راووتل او ورته ئ ووئیل چې کۀ چرې تۀ مونږ په خپل کلي کښې پریښودلې او تا مونږ سره په یو تالي ډوډۍ وخوړه نو مونږ به بیا ستا د طرف نه تیمور شاه سره په جنګ کولو باندې پړۀ شو. او چونکې زمونږ دومره زور نشته د دې دپاره تۀ زمونږ کلي ته مۀ راځه ځکه چې مونږ به برباد شو. ارسلا خان هغوي ته منت او زاري شروع کړه او سره په خبرو کښې مشغول شو خو په بله لار ئ خپله کډه او اسباب هغې کلي ته په پټه ولیږلو. څۀ وخت چې د کلي مشرانو ته معلومه شوه چې د ارسلا خان سرې کلي ته دننه شول نو هغوي یو بل ته ووئیل چې اوس ارسلا خان زمونږ میلمه شو او مونږ د هغۀ په حفاظت کولو باندې مجبور یو. پس هغوي په ډیر عزت هغه کلي ته راوستو. او خپله ټوله قبیله ئ راجمع کړه او د هغۀ دپاره ئ بادشاه سره د جنګ کولو فیصله وکړه." دا قصه ایلفنستن د پښتنو د مهمان نوازۍ او د هغوي په بهادرۍ پورې کړې ده.

په کال 1781ء کښې د ملتان گورنر چې د تیمور شاه د طرف نه مقرر وۀ هغۀ د دغې ښار قلعه سکهانو ته حواله کړه. تیمور شاه پخپله د هغې د اخستو دپاره روان شو مګر یو سپکه دسته ئ د ځان نه وړاندې په دې غرض ولیږله چې مارامار مخکښې لاړه شي او په سکهانو باندې ناساپه حمله وکړي. چنانچه دې دستې په ډیرې تیزۍ سره د ملتان رخ وکړو او په سکهانو ورپریوتل او شکست ئ ورله ور کړو.

د تیمور شاه د ارام پسندۍ او نرم طبیعتۍ نه چې کومو خلقو ناجائزه فائدهٔ اخستې وه په هغې کښې د سندهـ تالپوریان هم شامل وو. هغوي د میر فتح علي خان د سرکردګۍ د لاندې د سندهـ ګورنر د خپل ملک نه وویستو او بغاوت ئ وکړو. بادشاه مخکښې کال له مدد خان د هغوي د سرکوبۍ دپاره سره د یو لوے لښکر واستولو. تالپوري قبائل د دراني فوځ نه غرونو او ځنګلونو ته وتښتیدل. مدد خان د حد اعتدال نه تجاوز وکړو او ټول چارچاپیره

ملک ئ په لوټ مار باندې تباه او برباد کړو. د تالپوریانو فصلونه او غلې ئ وسیزلې او مالونه ئ ورلـه ووژل. کـورونه ئ ورله وسیزل او دومره سختي ئ ورسره وکړه چې د هغهٔ د فوځونو د تـلـو نـه پس په سندهـ کښې سخت قات پریوتو. اخر کار مدد خان قندهار ته راغـې او سابق گـورنر ئ پخپل حکومت کښې بیا قائم کړو مگر هغه لا قندهار ته رسیدلے نهٔ وهٔ چې تالپوري قبائل د غرونو او ځنگلونو نه راووتل، گورنر ئ بیا وشړلو او سندهـ ئ واخستو.

تیـمـور شـاه د نـورو اهمو معاملاتو په وجه فوراً د سندهـ د سرکوبۍ دپاره لاړ نهٔ شو. قـریباً پـنځهٔ کاله پس په کال 1786ء کښـې هـغـهٔ احمد خان نورزے د سندهیانو د سرکوبۍ دپـاره واستـولـو. مـعـلـومیږي چې د هغهٔ فوځ په شمار هم کم وهٔ او افسران ئ هم ناقابل وو. تـالپـوریانو دا ځل تړولو اتفاق وکړو او د احمد خان برخلاف ئ یو ډیر لوے فوځ تیار کړو. په یو مقام کښې هغوي د احمد خان فوځ ته پټ ناست وو او ناساپه ئ پرې حمله وکړه. د احمد خـان فوځ شکست وخوړو او شکارپور ته واپس شو. سندهیانو د دې نه وروستو تیمور شاه ته خپـل یو سـفیر د صلح دپاره استولے وهٔ. هغهٔ د سندهیانو د طرف نه بادشاه ته ډیره عاجزي او زاري وکړه او اخر کښې هغهٔ بادشاه ته د خپل ملک د طرف نه د مالیې د ورکولو او د فوځ د اخراجاتو د ادا کولو اقرار وکړو. بادشاه د خپل طرفه په فرمان شاهي باندې میر فتح علي خان خپل گورنر مقرر کړو. دا میر فتح علي خان هم هغه سړے وهٔ چې د سندهیانو مشر وهٔ.

آزاد خـان پـه کـشـمـیر کـښـې د دې نـه پـس بـغاوت وکړو. سـردار مدد خان د هغهٔ د سـرکوبۍ دپاره بادشاه واستولو. سردار پائنده خان هم په لام کښې سردار مدد خان سره لاړو او پـه ډیـره بهادرۍ د آزاد خان برخلاف وجنگیدلو او هغهٔ له ئ شکست ورکړو. سـردار مدد خـان پـه واپسۍ د سردار پائنده خان د خدمت ډیر صفتونه تیمور شاه ته وکړل. بادشاه په دې د پـائـنده خان نه ډیر رضا شو او د شال (کوئټه) علاقې ته ئ د مالیې د ټولولو دپاره ولیږلو. دا فـرض هـم هـغـهٔ پـه دې شان ادا کړو چې نهٔ ترې نه د علاقې رعایا خفه شوله او نهٔ په سرکاري مالیه کښې څهٔ نقصان وشو. په کال 1788ء کښې هغهٔ په بهاول خان باندې د هغهٔ د سرکشۍ په وجه حمله وکړه او هغه ئ خپل باجگزار کړو.

د کال 1788ء پـه مـوسم گرما کښې تیمور شاه مجبور شو چې په شاه مراد بې چې د بـخـارا اُزبک تاتاري بادشاه وهٔ د جنگ اعلان وکړي. شاه مراد بې د ډیرې مودې نه د دراني سـلـطـنـت په صوبو باندې گوابنیدلو. او کومه موده کښې چې تیمور شاه بهاولپور ته فوځونه لیږلي وو نو د هغهٔ وړانې دومره زیات شو چې تیمور شاه د هغهٔ برخلاف په جنگ کولو باندې مـجـبـور شـو. تیـمـور شاه د جنگ نه اول هغهٔ ته یوه چیټۍ ولیږله چې په هغې کښې هغه ټول وجـوهـات بیان کړي وو چې د کومو په سبب باندې تیمور شاه د هغهٔ برخلاف لښکرکشۍ ته تیار شوے وهٔ. د هغه خط بعضې فقرې دا دي:

" احمد شاه مغفور مرحوم د همیش دپاره شاه بخارا سره د دوستی او د صلح تعلقات ساتلي وو ما هم په هغه قدم قدم ایښے دے. مګر شاه مرادبے د څهٔ زمانې نه د درانو په سلطنت باندې ګواښېږي او همیش دپاره ئ خپل ځان د درانو د جنګ نه پخپل اظهار عقیدت او په نور قسم عذرونو ساتلے دے. ولې سره د دې هغه چرې خپل غرض او مطلب د لاسه نهٔ دے غورځولے. شاه مراد اوس ښکاره په مرو باندې قبضه وکړه او د هغې ځاے نه ئ زما شیعه رعایا په دې بهانه باندې ویستل چې زهٔ هغوي سم اسلام ته بیا راولم. زهٔ دا وایم چې هیڅ حکومت له د بل حکومت په رعایا کښې د هغوي د مذهب په وجه دخل ورکول پکار نهٔ دي. بله خبره دا ده چې کهٔ چرې تهٔ په واقعه کښې په مذهب باندې دومره مئین ئ او دا هر څهٔ د مذهب په اصولو باندې کوے نو تهٔ ما د خپلو حملو په سبب د هندوستان ملک د هندوانو، عیسایانو او د یهودیانو نه د پاکولو نه ولې نهٔ منع کوے؟ او شهر سبز، خوجند او ترکمانو سره چې هغوي بلا شک و شبه سنیان دي څله جنګونه کوے." تیمور شاه مخکښې لیکي: " دې قومونو ماته خواست کړے دے او په دې وجه زهٔ د هغوي جګړه ستا برخلاف پخپل سر اخلم او سمدستي د ترکستان په طرف باندې در روانیږم. د دې دپاره تهٔ ماله فوراً پخپله راشه او د دې معاملاتو تصفیه ما سره پخپله وکړه."

د کال 1789ء په سپرلي کښې تیمور شاه د کابل نه قریباً یو لک فوځ سره قندوز طرف ته روان شو. د قندوز نه هغه اخشي طرف ته پیش قدمي وکړه. په دې ټول سفر کښې هغهٔ د جنګ چیړلو نه خلاف وهٔ او شاه مراد ته ئ دا موقع ورکوله چې د صلح شرطونه پیش کړي. مګر شاه مراد په ځاے د صلح یو لوے فوځ د هغهٔ د مقابلې دپاره تیار کړو. د درانو او د شاه بخارا د سلطنتونو حد دریائے جیحون وهٔ. دې فوځ سره شاه بخارا د دریائے جیحون نه د کیلف په مقام راپورې وتلو. هغهٔ د خپل ځان نه وړاندې خپل وررور عمر خوشبیګي اخشي ته د فوځ یوې دستې سره راولیږلو او علي ویردي یو بل افسر ئ په دې مقرر کړو چې د درانو د فوځ د رسد رسانۍ لارې بندې کړي. کهٔ چرې پښتنو په اُزبکو باندې فوراً حمله کړې وے او د صلح په طمع ئ ورځې نهٔ وے تیرې کړے نو هغهٔ به ضرور فتح حاصله کړې وه. خو د تیمور شاه د قوت فیصلې د کمزورۍ په وجه د پښتنو فوځ تر ډیرې مودې پورې هسې بیکاره پروت وهٔ. بیا آخر مراد په خپل مکر فریب سره تیمور شاه ته د صلح پیغام ولیږلو ځکه چې هغهٔ ته معلومه وه چې زهٔ په هیڅ شان سره د پښتنو برخلاف په میدان جنګ کښې فتح نهٔ شم حاصلولے. او ممکنه ده چې په جنګ کښې زما نه خپل ملک هم لاړ شي. له دې کبله د صلح په غرض باندې هغهٔ د بخارا لوے لوے ملیان او عالمان قرآن په لاس تیمور شاه ته ورولیږل چې د هغهٔ منت وکړي. او مسلمانان د خونریزۍ او د تباهۍ نه بچ کړي. تیمور شاه د اول نه د خپلې نیک دلۍ په وجه د دې جنګ د کولو برخلاف وهٔ مګر شاه بخارا د خپلې

cruelty and injustice.

In personal character he seems to have been cheerful, affable and good natured. He maintained considerable dignity on state occasions, but at other times his manners were plain and familiar; and with the Durranies he kept up the same equal and popular demeanour which was usual with their Khans before they assumed the title of King. He treated mullahs and holymen with great respect both from policy and inclination. He was himself a divine and author and was always ambitious of the character of a saint.

His policy towards the different parts of his dominions was to rely principally on conciliation with the Afghans and Balouchs; with this difference between the nations, that he applied himself to the whole people in the first case, and only to the chief in the other .............

It has before been observed that Ahmad Shah did wisely in choosing to lay the foundation of a great Empire, rather than complete a small one. The countries under his Dominion extended at his death, from the west of Khurasan to Sarhind and from the oxus to the sea, all of which were secured to him by treaties, or by actual possession, and had his plans been persued, there is no doubt that a Government sufficiently strong to have secured its own stability, would soon and easily have been introduced through the whole of this great Empire.

Th character of Ahmad Shah's succession was, unluckily very different from his and it was in a great measure owing to the system of policy introduced by Taimoor, that the power of the Durranies first became stationary and has since declind.

د احمد شاه خوئ خصلت د هغې واقعاتو او د هغې زماني مطابق چې په کومه کښې هغه پیدا شوے وۀ ډیر زیات موزون وو د نادر شاه د مرګ نه پس کومه بادشاه ګردي چې په ملک کښې پیدا شوې وه د هغې نه احمد شاه د خپل قابلیت او د جرأت په سبب فائده واخسته او کوم اعتدال او عقل چې هغۀ په خپل قومي معاملاتو کښې زده کړے وۀ هغه په یو جنګجو او خودمختار قوم باندې د حکومت کولو دپاره هم دومره ضروري وۀ لکه چې خومره د هغۀ قدرتي ذهن دلیري او جرأت وۀ.

د هغۀ خپل رعایا او هغه قومونه هم چې چا سره هغۀ جنګونه کړي وو او یا ئې ورسره معاهدې کړې وې دوې دواړه د هغۀ د فوځي شجاعت او د چا ق والي تعریف کوي. هغه طبعاً نرم دل او رحم طرف ته مائل وۀ او اګر چې شاهي طاقت حاصلول بغیر د سختۍ کولو نه ناممکن وي او په ایشیا کښې خو د هغې سنبالول بغیر د ظلم نه مشکل دي مګر د بې انصافۍ او د ظلم داغونه چې خومره لږ او کم د احمد شاه په لمن دي دومره لږ داغونه د یو بادشاه په لمن هم نشته.

پخپل ذاتي خوئ خصلت کښې احمد شاه بشاش طبیعت خوش اخلاق او نیک

عیبونو نه ماسوا تیمور شاه نور ډیر لائق او قابل بادشاه وهٔ. فیریر وائي چې په افغانستان کښې زما د سیاحت په دوران کښې ماته داسې ډیرو سردارانو سره د خبرو کولو موقع حاصله شوې ده چې څوک د تیمور شاه په دربار کښې د لویو لویو رتبو خاوندان وو او د هغهٔ د عادتونو او خصلتونو نه په ښهٔ شان سره واقف وو. د دې سردارانو نه ماته معلومه شوه چې د تیمور شاه فراست او چاق والے هم دومره زیات وهٔ چې څومره د هغهٔ بهادري او مستقل مزاجي. او دا هم د دې صفاتو وجه وه چې د هغهٔ پلار هغهٔ له په نورو زامنو باندې ترجیح ورکړې وه.

## د تیمور شاه درویشت زامن وو

(۱) همایون مرزا د دهٔ مور د سدوزو د قبیلې وه. (۲) محمود مرزا (۳) حاجي فیروزالدین مرزا د دوې مور د پوپلزو د قبیلې وه. (۴) عباس مرزا (۵) کوهندل مرزا د دوئ مور د اسحاق زو د قبیلې درانۍ وه. (۶) زمان مرزا (۷) شجاع الملک مرزا د دوئ مور یوسفزۍ وه. (۸) احمد مرزا (۹) محمد سلطان مرزا (۱۰) یزدان بخش مرزا د دوئ مور نورزۍ دراني قبیلې نه وه. (۱۱) کشورمرزا (۱۲) سلطان علي مرزا (۱۳) نادر مرزا د دوئ مور د نادر شاه کروسۍ وه. (۱۴) اشرف مرزا (۱۵) مظفر مرزا (۱۶) جهان والا مرزا د دوئ مور د اچکزو قبیلې درانۍ وه. (۱۹) محمد مراد مرزا (۲۰) میران مرزا (۲۱) حسین مرزا د دوئ مور د محمد زئ قبیلې نه وه. (۲۲) هاشم مرزا (۲۳) شاه پور مرزا د دوئ مور مغله وه. ماسوا د کشور سلطان علي او نادر نه چې د نادر شاه د کړوسۍ زامن وو او ماسوائ د هاشم او د شاه پور نه چې د هغوي مور د شهنشاه دهلي احمد شاه مغل لور وه. د تیمور شاه نور ټول زامن د پښتنو میاندو نه وو.

## زمان شاه

د تیمور شاه د مرګ په وخت کښې د پښتنو سلطنت کښې د کشمیر، لاهور، پېښور، کابل، بلخ، خلم، قندهار، هرات، ملتان او د غزني علاقې شاملې وې. قلات بلوچستان او ایراني خراسان د هغوي باجګزار وو. د سندهـ علاقې باوجود د میر فتح علي خان تالپوري سردار د اقرار نه د پنځو کالو باج نهٔ وهٔ ورکړے مګر هغه هم د پښتنو یوه صوبه ګڼلې شوه.

تیمور شاه چې وفات شو نو همایون مرزا د هغهٔ د ټولو نه مشر زوے د قندهار ګورنر وهٔ. محمود مرزا د هرات ګورنر وهٔ عباس مرزا په پېښور کښې وهٔ. زمان په کابل کښې وهٔ. شجاع الملک په غزني کښې وهٔ، کوهندل مرزا په کشمیر کښې وهٔ، ماسوائ د همایون او د

محمود نه د تیمور تول زامن څهٔ وخت چې هغوي د پلار د مرګ خبر واؤریدو نو کابل ته راورسیدل. چونکې تیمور شاه پخپله د خپل جانشین متعلق څهٔ وصیت نهٔ وهٔ کړے د دې دپاره د هغهٔ په زامنو کښې د تاج و تخت دپاره هر یو د اخستو کوشش شروع کړو او لا د تیمور جنازه نهٔ وه شوې چې هر یو خپل خپل ځان له په سردارانو کښې پرې جنبې جوړې کړې. ورومبے ورومبے خو د عباس مرزا چې د تیمور شاه شلورم زوے وهٔ او د خپلې پهلوانۍ دپاره مشهور وهٔ د بادشاه کیدو ډیر امید وهٔ. مګر سردارانو د بادشاه د انتخاب فیصله د تیمور شاه د جنازې او ښخیدو تر وخته پورې ملتوي کړه. په دې منځ کښې پرې او جنبې نورې هم زیاتې شوې او هر یو سردار د یو یو شهزاده په طرف شو.

په ټولو سردارانو کښې پائنده خان د حاجي جمال خان زوے چې د بارکزو د قبیلې سردار وهٔ ډیر طاقت او اقتدار لرلو. هغه په خلقو کښې هم ډیر هردلعزیز وهٔ او چونکې د بارکزي په قبیله کښې د محمد زي د خاندان نه وهٔ په دې وجه د سدوزو نه پس به ټولو خلقو د بارکزو دمشر ډیر عزت او احترام کولو. هرکله چې بادشاهي د سدوزو اولاد ته لاړه نو ټولو قبیلو په عام طور باندې د بارکزو د مشر په ذریعه د بادشاه نه خپل حقوق وغوښتل. د تیمور شاه په بیبیانو کښې د زمان مرزا او د شجاع الملک مور پائنده خان پخپل طرف کړو او د هغهٔ د امداد او اثر په وجه اکثر سرداران او قبائل د کابل قزلباشو سره د زمان مرزا چې د تیمور شاه پنځم زوے وهٔ په طرف شول.

په دې سردارانو کښې احمد خان نورزے، فتح الله خان سدوزے، نورمحمد خان، امین الملک، امیر اسلام خان، جوان شیر، محمد خان بیات او امیر الله خان لوګرے هم شامل وو. پائنده خان په اسانه د زمان په انتخاب باندې ټول سرداران نهٔ شو متفق کولے ځکه چې بعضې بعضې طاقتور سرداران د عباس مرزا په طرف وو مګر پائنده خان دا شان چل وکړو چې د بادشاه د انتخاب دپاره ئې ټول سرداران او د تیمور شاه زامن راجمع کړل. د تیمور شاه ټول زامن ماسوائې د محمود او همایون نه په دې جرګه کښې شامل شول. هیچا ته هم په دې جرګه کښې د وسلې راوړلو اجازت نهٔ وهٔ چې ټول سرداران او شهزادګان راجمع شول او څهٔ بحث مباحثه وشوه نو زمان خان ناساپه د جرګې نه پاڅیدو او پائنده خان هم ورپسې ووتلو او لږ ساعت پس ئې ټولو سردارانو او شهزادګانو پسې وروڼه پورې کړل او فوځونه ئې ترینه تاؤ کړل. په حقیقت کښې د پښتنو د سلطنت د خونریزي نه ساتلو دپاره پائنده خان ته بله هیڅ لاره نهٔ ښکاریده. چونکې هغهٔ په پټه د اکثرو سردارانو نه دا معلومه کړې وه چې هغوي د زمان مرزا په طرف دي په دې وجه د خانه جنګۍ نه د بچ کیدو دپاره هغهٔ دا شان چل وکړو او زمان مرزا ئې بادشاه کړو.

پس د دې نه زمان شاه خپل ټول وروڼه په بالاحصار کښې نظر بند کړل. څهٔ موده

ـولو وروـنـو مـاسـوایٔ د محمود او همایون نه زمان شاه بادشاه تسلیم کړو. زمان شاه د خپل
ـلـطـنـت ابـتـداء په نرمۍ او رحمدلۍ سره وکړه. د خپل پلار تیمور شاه په شان د هغهٔ هم دا
ـواهـش وهٔ چـې خـپـل ځـان لـه تـنـخـواه دار ملازمان پیدا کړم. چې د هغوي د اقتدار او د اثر
ارومـدار پـه مـا بـانـدې وي. هـغـهٔ د خپل پلار زړو ملازمانو له ښهٔ پنشونونه ورکړل. او لویې
ویـې عهـدې خپـلـو پـره دارانو او طرف دارانو باندې وویشلې. کومو سردارانو چې د هغهٔ د
تخاب مخالفت کړے وهٔ هغه ئ په ډیر کوشش ځان سره ملګري کړل او رضا ئ کړل. مګر
ـې شوک بدستور د هغهٔ مخالفان وو او د هغوي نه په ملک کښې د فساد اندیښنه وه هغوي
ئ قتل کړل. دغه شان د کابل په علاقه کښې هغهٔ خپل حکومت قائم کړو.

د زمـان شـاه د تـخـت نشینۍ زمانه د پښتنو د حکومت دپاره یوه لویه د ازمیښت زمانه
ه. ځـکـه چـې پـه هـندوستان کښې بدستور بادشاه ګردي وه او د انګریزانو نوې نوې زور په
ـنـوبـي او مشـرقي هندوستان کښې پیدا شوے وهٔ. د فیرنګیانو، فرانسیسیانو او پرتګیزو په
ـنـځ کښې د هـنـدوسـتـان د بې مالکه ملک د قبضې دپاره هر طرف ته جګړې وے. صرف
رهټه چې احمد شاه دوئ له شکست ورکړے وهٔ د هندوستان پخپلو باشنده ګانو کښې دې
ومـونـو سـره برسرپیکار وو. د ډیرو جنګونو نه پس د انګریزانو قوم په نورو یورپین طاقتونو
ندې په هندوستان کښې برے حاصل کړو او صرف مرهټه او انګریزان اوس د هندوستان په
یدان کښې پاتې شوي وو.

د مسلمانانو حکومت لکه څنګه چې وړومبے ذکر شوے دے بالکل تباه شوے وهٔ او د
رهـتـه د شـکـسـت نه پس اوس انګریزان د مسلمانانو د صوبو په تسخیر کښې مشغول وو.
یـدر عـلـي د ټیپـو سـلـطـان پـلار پـه جنوبي هندوستان کښې یو ډیر زبردست بادشاه وهٔ. د
ـلـورو واړو طـرفـو نه انګریزان د دهٔ د حکومت نه چاپیره شوي وو او د هغهٔ د مرګ نه پس
ـپـو سـلـطـان سره د انګریزانو متعددې معرکې وشوې. دغه شان بنګال، اودهـ او د دهلي په
ـلاقـو هـم انـګـریـزانـو ورو ورو خپل زور قائمولو. په دغه وخت کښې کهٔ چرې زمان شاه د
ابـل پـه تـخـت بـانـدې چـا ارام تـه پـریښې وے او هغهٔ له چا د خپلو ارادو د تکمیل اجازت
کړے وے نو دا وخت به د هندوستان بل حال وهٔ.

هـر کـلـه چې مرهټه او انګریزانو د خپل خپل حکومت په هندوستان کښې د قائمولو
وشـش کـولـو او د دې دواړو قـومـونـو خـلقو په کمال اتفاق او یو والي سره خپل اقتدار په
ندوستان کښې قائمولو نو پښتنو یو تر بله لکه د لیونو جنګونه کول. او زمان شاه ئ د لاهور
مـخـکښې کیدو ته نهٔ پریښودو. زمان شاه قریباً لس ځله د هندوستان د بادشاه ګردۍ نه د
ـنـدې اخستلو په نیت او د پښتنو د حکومت قائمولو په اراده هندوستان ته روان شو مګر هر
ل د مـحـمـود او د هـغهٔ د زوي د بغاوتونو په وجه په واپس کیدو مجبور شو. بعضې بعضې

جنګونه خو فیرنګیانو هغوي ته په دې وجه پیدا کړي وو چې هغه په هندوستان باندې حمله ونکړې شي. مګر اکثر فسادونه او خانه جنګۍ هغهٔ ته خپل قوم او د مسلمانانو نورو قومونو پیدا کړې وې. او د هغو په وجه هغه پخپل مقصد او مطلب کښې بالکل کامیاب نشو. د پښتنو ضرب المثل بې اتفاقي، خانه جنګۍ او خود غرضی په دې زمانه کښې کمال عروج ته ورسیدلې او پښتانهٔ ئې د همیش دپاره ذلیل او تباه کړل. کهٔ د پښتنو دا بې اتفاقي او خانه جنګۍ د زمان شاه په وخت موجود نهٔ وې نو د افغانستان پښتانهٔ به د غیر قومونو د فوځونو د لاسه نهٔ پانسي کیدل او نهٔ به دوه ځله د هغوي په ملک کښې د غیر قومونو فوځونو قتل عام کولو.

د دې خانه جنګو په داستان کښې اوله قصه د همایون مرزا ده. همایون چې څهٔ وخت په قندهار کښې د زمان شاه د تخت نشینۍ نه خبر شو نو په کابل باندې ئې د حملې دپاره تیارۍ شروع کړې. دغه شان محمود مرزا هم خپل فوځونه تیار کړل. زمان شاه چې د دوئ په نیتونو پوهه شو نو فوراً ئې د قندهار طرف ته توجه وکړه او د یو ښهٔ مضبوط لښکر سره دې طرف ته روان شو. همایون هم د مقابلې دپاره راووتلو. دواړه فوځونه قلات غلزي سره مخامخ شول. همایون په دې جنګ کښې مکمل شکست وخوړو او هغه بلوچستان ته وتښتیدو. زمان شاه بیا د هرات د تسخیر نیت وکړو چې ورته خبر راغے چې په کابل کښې د هغهٔ د حکومت برخلاف بې چینې ده او بیروني صوبه جات هر یو د خپلې خودمختارۍ کوشش کوي په دې وجه زمان شاه فوراً کابل ته واپس روان شو.

کابل ته د رسیدو سره هغهٔ د خپل طرز حکومت دپاره اصول وضع کړل. د هغهٔ دا خیال پیدا شو چې زما د پلار او زما د نرمۍ نه ټول خلق ناجائزې فائدې اخلي او په دې وجه هر یو طاقتور سړے بغاوت ته مائل کیږي. هغه په خپله ناپوهۍ باندې د لویو لویو سردارانو په زړونو کښې د ځان نه د خوف پیدا کولو کوشش شروع کړو. او د هغوي نه ئې ټول اختیارات واخستل. بادشاه په هر یو سردار باندې مخبران او سپاهیان د نګرانۍ دپاره مقرر کړل. په لږ لږ قصور باندې به ئې سختې سختې سزاګانې ورکولې. دغه شان ډیر سرداران د یو بل نه پس هغهٔ ګرفتار کړل. او د هغوي پنشنونه او تنخواه ګانې ئې ضبط کړې. پائنده خان چې د چا د لاسه زمان شاه په تخت کښیناستلے وهٔ د هغهٔ نه هم زمان شاه ټول اختیارات واخستل. او د هغوي په ځاے ئې نور خلق د خپله لاسه مقرر کړل. د دې سختۍ دا نتیجه شوه چې ډیرو لویو لویو خلقو دارالخلافه پریښوده او مختلفو صوبو ته د استوګنې په غرض لاړل. په هغه ځایونو کښې هغوي د بادشاه برخلاف سازشونه جوړ کړل. پنجاب د ټولو نه وړومبے باغي شو کشمیر هم راوچت شو. سندهـ هم د بادشاه نه خپل تعلقات قطع کړل. او اُزبک بیا د دریائے آمو نه راپورې وتل.

د ټولو نه وړومبے هغۀ پنجاب ته توجه ورکړه. او سره د يو لوے لښکره هغه پنجاب ته په دسمبر 1793ء کښې روان شو. مګر څۀ وخت چې پيښور ته راورسيدو نو هغۀ ته خبر وشو چې همايون د سنده د خلقو په امداد سره بيا په قندهار باندې قبضه وکړه. هغه فوراً واپس شو او قندهار ته روان شو. همايون نه ټول پښتانۀ خفه وو هغوي په دې وجه همايون سره ونۀ دريدل. او هغه بيا سنده ته وتښتيدو. د سنده نه هغۀ هرات ته د راتلو کوشش وکړو مګر په لاره باندې هغه د زميندارو په علاقه کښې د زمان شاه سړو ګرفتار کړو او د بادشاه په حکم سره د همايون سترګې ړندې کړې شوې. او باقي عمر ئې په قيد کښې تير کړو.

زمان شاه د دې نه پس د سنده برخلاف د تالپوريانو د سرکوبۍ دپاره فوځ کشي وکړه. همايون په قندهار باندې حمله د تالپوريانو په امداد سره کړې وه او علاوه د دې نه د پنځو کالو خراج د هغوي په ذمه وۀ. پس هغه د درۀ بولان په لاره باندې سنده ته راپورې وتلو. مګر هغه لا په مشکله باندې دې ملک کښې داخل شوے وۀ چې ئې واورېدۀ چې محمود په هرات کښې زما برخلاف تيارے کړے دے. او افغانستان ته زما د داخليدو لارې بندوي. پس هغه مير فتح علي خان تالپوري سره د درې لکو پونډونو په ادائيګۍ صلح وکړه. فتح علي هغۀ بدستور د سنده ګورنر پريښودو او بيا ډير په شتاب سره د محمود د مقابلې دپاره قندهار طرف ته روان شو. محمود مرزا د هرات نه پخپل ورور باندې د حملې کولو دپاره رااروان شوے وۀ. دې خوا ته زمان شاه هم د قندهار نه ورمخکښې شو دواړه فوځونه د ګرشک او د زميندارو په منځکښې مخامخ شول. پنځلس ګينټې جنګ وشو محمود مرزا شکست وخوړو او د فراه په ښار کښې ئې صرف د لسو تنو سره پناه واخسته.

د دې نه پس زمان شاه نيغ هرات ته لاړو مګر د ډيرو حملو نه پس هم د هغۀ فوځ په هرات اخستو کښې کامياب نۀ شو. اخر د محمود مرزا مور په طور د جرګې هغۀ له کيمپ ته راغله. او ورته ئې ووئيل چې زما زوے د تاج و تخت مدعي نۀ دے او کۀ چرې د هرات حکومت هغۀ ته ورکړې نو هغه به شکرګزار وي. بادشاه منظوره کړه او محمود ئې د هرات په حکومت کښې پريښودو. څۀ وخت چې زمان شاه د محمود په مسخر کولو کښې مصروف وۀ نو اُزبکو په افغاني ترکستان باندې حمله وکړه د زمان شاه په ګورنر ئې ناساپه چاړ وکړو او هغه ئې ګرفتار کړو او په بلخ ئې قبضه وکړه. څۀ وخت چې زمان شاه کابل ته واپس شو نو اُزبکو دا خيال وکړو چې زمان شاه به ضرور اوس په مونږه حمله کوي پس هغوي زمان شاه ته د صلح دپاره سفير رااستولو او هم په هغې شرطونو ئې صلح وکړه چې په کومو هغوي تيمور شاه سره صلح کړې وه. چونکې زمان شاه سره زيات تر په هندوستان باندې د حملې کولو فکر وۀ د دې دپاره هغۀ د شاه بخارا برخلاف فوځونه ونۀ ليږل.

اُزبک د دريائے آمو نه بيا پورې وتل او د بلخ علاقه ئې پريښوده. هم په دې ورځو

کښې زمان شاه د کشمیر بغاوت فرو کړو . دا رنګ هغهٔ په لړه موده کښې سندهـ، کشمیر، بلخ او خراسان کښې امن قائم کړو او پیښور ته په هندوستان باندې د حملې کولو دپاره روان شو. د کال 1795ء په اخر کښې هغه سره د یو لوے لښکره اټک نه د کشتو په پل باندې پورې وتلو. هر کله چې هغه حسن ابدال ته ورسیدو نو د هغه ځاے نه ئ سردار احمد خان د فوځ د یوې دستې سره د روهتاس د قلعې اخستو دپاره د سکهانو په خلاف ولیږلو. احمد خان سره د دې علاقې ټول جاټ، ګکړ او نور مسلمان قومونه یو ځاے شول او په ډیره اسانی سره ئ دا قلعه واخستله. سکهان په ډیر هیبت سره غرونو ته وتښتیدل. (ایلفنسټن)

په حسن ابدال کښې هغهٔ صرف د یوې هفتې پورې قیا، وکړو چې هغهٔ ته خبر راورسیدو چې آغا محمد قاجار د ایران بادشاه په ایرانې خراسان باندې حمله کړې ده. د ایرانیانو د دې حملې مطلب د مشهد اخستل وو. آغا محمد چې یو ډیر بې اصوله او ظالم بادشاه وهٔ. څهٔ وخت چې مشهد ته ورسیدو نو شاه مرزا چې د نادر شاه نمسے وهٔ او ډیر ضعیف العمر وهٔ هغهٔ د آغا محمد اطاعت قبول کړو او د هغهٔ کیمپ ته راغے. مګر دې سفاک او ظالم انسان د نادر شاه په دشمنی په ډیرو عذابونو هغه قتل کړو. آغا محمد بیا په مشهد کښې ورداخل شو. د نادر شاه قبر ئ لوټې لوټې کړو د هغهٔ هډوکي ئ راوویستل او تهران ته ئ ولیږل.

زمان شاه د دې بې عزتی د بدل اخستو دپاره یو لوے فوځ تیار کړو او په دریمه جنوری کال 1796ء واپس پیښور ته راورسیدو مګر په دې اثنا کښې د صلح خبرې اترې وشوې او آغا محمد خراسان پریښودو او ایران ته واپس لاړو. بادشاه بیا پیښور نه دیرش زره فوځ سره روان شو او تر لاهور پورې ټول ملک ئ واخستو. او سکهان ئ وویستل. په دریمه جنوری 1797ء هغه په لاهور کښې داخل شو. بیا هغهٔ په هندوستان باندې د حملې کولو تیاری کولې چې محمود بیا په هرات کښې بغاوت وکړو او زمان شاه قندهار ته په واپس تلو باندې مجبور شو. زمان شاه په اتم ستمبر کال 1797ء د قندهار نه د محمود په مقابله کښې ووتلو. دا ځل زمان شاه محمود ته بیا شکست ورکړو، په هرات ئ قبضه وکړه او خپل زوے قیصر مرزا ئ د هغې ځاے ګورنر مقرر کړو او زمان خان پوپلزے ئ د هغهٔ وزیر مقرر کړو.

محمود مرزا سره د خپل زوي کامران دا ځل تورشیش (ایران) ته وتښتیدو او بیا بادشاه د هندوستان د اخستو په نیت روان شو. هغه د پیښور نه په پنځویشتم اکتوبر 1798ء روان شو. او تر لاهوره پورې بې تکلیفه راورسیدو. سکهانو سره ئ مستقله سمجهوته وکړه او هغوي سره ئ عهد و پیمان وکړو. اکثر سرداران او د چارچاپېره علاقو مشران پخپله بادشاه له د اطاعت د اظهار دپاره راغلل. سردار رنجیت سنګهـ سم سره د خپلو نورو افسرانو

پـه دربـار کښې د بادشاه حکومت تسليم کړو. بادشاه هغوي سره ډير ښهٔ سلوک وکړو او پـه ډيـر خـاطـر تواضع باندې ئ رخصت کړل. او رنجيت سنگهـ ئ د خپله طرفه د لاهور گورنر مـقـرر کـړو. اوس بيا هغه د هندوستان په طرف روانيدو ته تيار وهٔ چې د کال 1798ء په اخر کښې هغهٔ ته خبر راغـے چې ايرانيانو د فتح علي شاه چې د آغا محمد جانشين وهٔ د سر کردگۍ د لاندې په ايراني خراسان باندې بيا حمله وکړه مجبوراً هغه واپس شو. او په ديرشمه جنورې 1799ء کښـې هـغـه پيښـور ته راورسيدو. په واپسۍ کښې د هغهٔ نه په دريائے جهلم کښې د سيلاب پـه وجـه تـوپـې ډوبـې شـوې مگر سردار رنجيت سنگهـ او صاحب سنگهـ هغه توپې راوښـکـلـې او بادشاه له ئ پيښور ته واستولې. په پيښور کښې د څهٔ لږې مودې د قيام نه پس زمان شاه هرات ته روان شو.

دا ځـل فتـح عـلـي شـاه د هـنـدوستان انگريزي حکومت دې حملې ته لمسولے وهٔ. د زمـان شـاه پـه هـنـدوستان باندې د حملې کولو نيت او د هغې دپاره د هغهٔ د تيارو بندوبست د انـگريزي حکومت په زړهٔ کښې دا ويره کښينولې وه چې هسې نه زمان شاه د خپل نيکهٔ پشان هـنـدوسـتـان فتـح کړي. د زمان شاه په لاره کښې د مشکلاتو پيدا کولو دپاره او هغهٔ ته پـخپل مـلـک کښـې د جـنـگـونـو پيـدا کولو دپاره انگريزي حکومت د اصفهان دربار ته يو سفارت وليږلو او د هغې په ذريعه ئ فتح علي شاه ته د خراسان د اخستو لمسه وکړه. په دې وجه فتح عـلـي شـاه انـگريزانو سره عهدوپيمان وکړو. او د خراسان د حملې تيارے ئ وکړو او په دې طريقه باندې ئ زمان شاه د هندوستان د حملې نه راواړولو. ايرانيانو په دې حمله کښې د هيڅ قسـمـه کاميابي ونکړه. هغوي تر سبزوار پورې راغلل او بيا واپس شول مگر د انگريزانو چې کـوم مـطـلب وهٔ هغه وشو ځکه چې زمان شاه د هندوستان د حملې نه پاتې شو. ايلفنستن وائي چې د درانو د فوځ پيشقدمۍاو د هغوي د لاهور په ښار باندې قبضې کولو په ټول هندوستان کښې هل چل پيدا کړو.

The advance of the Durranies army and the occupation of Lahore did not fail in creating sensation throughout India. The weakness of the Marhattas, the whole of whose forces were drawn to the southward by their own dissensions, the feebleness of the Govt; of Nawab Vazeer and the disposition of a quarter part of his subjects to insurrection and revolt together with the anxiety of all the Mohammadans for the prevalence of their religion and for the restoration of the house of Tymoor, had prepared the country for a scene of disorder and anarchy which would doubtless have opened as soon as the Shah advanced to Dehli. This state of affairs was early perceived by the powers whose safety was threatened. The Marhattas indeed were struck with dismay and made little preparation to defend themselves,except by soliciting the assistance of their neighbours, but the British Govt; adopted more vigorous measures and sent a powerful army to Anoopsher to

defend the frontier of its ally, the Nawab Vazeer, nor were the partizans of the Shal were inactive intrigues were set on foot in many parts of Hindostan for the purpose of Co-operating with the princes invasion; the Rohillas had begun to assemble ir arms and every musalman, even in the remotest part of the Deccan, waited ir anxious expectation for the advance of the champion of Islam. These hopes and these apprehension were expelled for the time by the failure of Zaman Shah's expedition; but the impression of the advance was permanent. Some years elapsed before the Marhattas were reliev.d from their expectations of the appearance o another Ahmad Shah; and the principal object of the British Mission to Persia ir 1799 was to secure a three years suspension of the threatened attack of Zamar Shah.

Sir John Willian Kay- " All the enemies of British Empire in India had turnec their eyes with malicious expectancy upon Kabul. Out of the rocky defiles of the Romantic country were to stream the deliverers of Islam, from the yoke of the usurping franks. The blood of the Mohammadan princes of India was at fever heat From Northern Oudh and from Southern Mysore had gone forth invitations to the Afghan monarch, with large promises of aid, in money and in men. Wazeer Ali and Tippoo Sultan had encouraged him to move down upon Hindostan at the head of ar army of the believers, others, with whom he could claim on community of creed extended to him the hand of felloship. The Raja of Juna Garh offered him Rs 10,0000/- a lac of rupees a day as soon as the grand army should enter his district."

رجمه : د دراني لښكر دې پيشقدمى او د هغوي په لاهور باندې قبضې كولو په ټول هندوستان كښې يو هلچل پيدا كړو. مرهټه قوم په خپله كمزورے شوے وۀ. ځكه چې هغوي د خپلو كورنو بې اتفاقو په وجه خپل فوځونه ټول جنوبي هندوستان ته بوتلي وو. د نواب وزير حكومت ډير بې طاقته وۀ او د هغۀ په رعايا كښې اكثر خلق د هغۀ نه بغاوت كولو ته مائله وو. د دې نه علاوه د ټولو مسلمانانو دا خواهش وۀ چې زمونږ دين دې بيا خور شي او د تيمور خاندان دې برسر اقتدار راشي. د دې ټولو اسبابو په وجه تمامي ملک بدامنى او بدنظمى ته تيار ناست وۀ. خو چې څۀ وخت زمان شاه په دهلي باندې پيشقدمي كړې وے. د دې واقعاتو احساس فوراً هغه ټولو حكومتونو ته وشو چې د چا حفاظت په خطره كښې پريوتلو. او په مرهټو خو د ويرې نه يو هيبت راغلو. او د خپل ځان د بچاؤ دپاره ئ هيڅ تيارے ونۀ كړو. صرف دومره ئ وكړل چې د خپلو ګوانډي حكومتونو نه ئ د امداد طلب وكړو مگر د فيرنګيانو حكومت ښۀ مضبوط قدم وچت كړو. او يو طاقتور لښكر ئ انوپ شهر ته د خپل ملګري وزير نواب د سرحد د بچاؤ دپاره واستولو. د زمان شاه د پرې خلق هم هسې بيكاره ناست نۀ وو. د هندوستان په ډيرو حصو كښې سازشونه په دې غرض وشول چې څرنګ به د زمان شاه په راتلونكے حمله كښې هغۀ سره تعاون كيږي. روهيلي په ډير.شمار كښې سره د

وسلې راجمع کيدل شروع شول. او هر يو مسلمان عين تر دکن په دې اميد کښې په انتظار
شو چې کله به د اسلام علمبردار پيشقدمي کوي. د خلقو دا اميدونه او توقعات د څۀ وخت
دپاره خوارۀ شول. هر کله چې د زمان شاه دا حمله پاتې شوه مګر د دې حملې اثر د عامو
خلقو په زړونو باندې مستقل طور پاتې شو. څو کاله پس د مرهټو د زړۀ نه د بل احمد شاه د
راښکاره کيدو ويره لاړه. او کوم انګريزي سفارت چې ايران ته په 1799ء کښې تللے وۀ د
هغې غرض هم دا وۀ چې د زمان شاه دا مجوزه حمله دې د دريو کالو دپاره ملتوي کړي.

دغه شان سر وليم جان کے په خپل تاريخ کښې د دې حملې پحقله ليکي :

" په هندوستان کښې د حکومت برطانيه ټولو دشمنانو معاندانه توقعاتو سره د کابل
په طرف سترګې نيولے وے. د هغوي دا يقين وۀ چې د دې عجيب او غريب ملک د
کوهستاني درو نه به د مجاهدينو يو داسې ټولے راوځي چې هغوي به د اسلام د غاصبانو
فيرنګيانو د پنجې نه خلاص کړي. د هندوستان د مسلمانانو بادشاهانو وينه د جوش نه په
خوټيدو وه. په قطب کښې د اودهـ نه او سهيل کښې د ميسوز نه د پښتنو بادشاه ته دعوت
نامې تللې وے. او د ډير مال او د سرو د امداد وعدې ئ ورسره کړې وے. وزير علي او ټيپو
سلطان هم ورته ليکلي وو چې د مسلمانانو يو لوے لښکر د هندوستان د اختسو دپاره راکوز
کره نور کسان هم چې چا سره د هغۀ د مذهب شرکت نۀ وۀ هغۀ سره د ملګرتيا قول و اقرار
وکړو. د جونا ګړ راجه دا لوظ وکړو چې هر کله شاهي فوځونه د هغۀ په علاقه کښې قدم
کيږدي نو هغه به يو لک روپۍ روزانه هغۀ ته ورکوي.

Kaye page 9 Re : the treaty entered by

Capt; Malcolm with Persian Govt:

It stipulated that if ever again the Durrani monarch should be induced to attempt the invasion of India, the King of Persia should be bound to lay waste, with a great army, the country of the Afghans; and conclude no peace with its ruler that was not accompanied with a solemn engagement to obstain from all aggression upon the English."

ترجمه : د هغه عهدنامې چې کومه کپتان ميلکم حکومت ايران سره کړې وه. سر جان کے د
خپل کتاب په نهم مخ ليکي :

" د دې عهدنامې يو شرط دا وۀ چې کۀ چرې بيا دراني بادشاه په هندوستان باندې د
حملې کولو اراده وکړه نو شاه ايران به ضرور د پښتنو ملک په يو لوے لښکر تباه و برباد
کوي او د پښتنو بادشاه سره به هغه بالکل صلح نۀ کوي. تر څو پورې چې هغۀ دا اقرار نۀ وي
کړے چې بيا به د انګريزانو په خلاف هيچرې نۀ ګوابنيږم."

دا هغه زمانه وه چې د زمان شاه فوځونه د هندوستان نه تلي وو او د تيموري خاندان
حکومت ختم شوے وۀ. مګر د هندوستان مسلمانانو پټ پټ دا کوشش کولو چې زمان شاه

دې يو ځل بيا په هندوستان حمله وکړي. او د خپل فوځي طاقت مظاهره دې په ښهٔ شان سره
وکړي نو اميد دے چې د دې حملې نه پس د هندوستان يو طاقت بيا سر پورته نکړي. او د
تيموري خاندان حکومت د هميشه دپاره په هندوستان قائم شي. ولې چې مرهټه بالکل
کمزوري شوي وو. د هغوي فوځونه د خپلو بي اتفاقو په وجه جنوبي هندوستان ته رخصت
شوي وو. د نواب وزير حکومت ډير سخت کمزورے وهٔ د هغهٔ رعايا سرکشي او بغاوت ته
بالکل تيار وهٔ. او چونکې ټولو مسلمانانو حکومتونو دا غوښتل چې د مسلمانانو زور په
هندوستان کښې بيا پيدا شي او تيموري خاندان بيا مضبوط شي د دې دپاره کهٔ چرې زمان
شاه دهلي ته روان شوے وے نو د هندوستان په ملک به نوره هم بادشاه ګردي پيدا شوې وه.
دا واقعات هغه طاقتونو چې د چا حفاظت په خطره کښې پريوتے وهٔ فوراً وليدل. مرهټه بالکل
هيبت زده شول او د خپل ځان د بچاؤ دپاره ئ ماسوائ د خپلو همسايه ګانو قومونو نه د امداد
غوښتلو نه نور هيڅ ونکړې شو. مګر انګريزي حکومت زيات مضبوط تجاويز وکړل. او يو
زورور فوځ ئ انوپ شهر ته د نواب وزير د سرحد د حفاظت دپاره وليږلو. د زمان شاه پرې
دار هم هسې ناست نهٔ وو. د هندوستان په هر ګوټ کښې هغهٔ ځان له پرې جنبې پيدا کړې
چې په هندوستان د حملې په وخت کښې هغهٔ سره امداد وکړي. روهيلي په ډير تعداد کښې
سره د وسلې رَاجمع شول. او هر مسلمان ان تر دکن پورې د اسلام دې پهلوان ته د راتللو په
طمع ناست وو. د هغوي دا اميدونه او توقعات د زمان شاه د واپس تللو په وجه د لږ وخت
دپاره قطع شول. مګر کوم اثر چې د هغهٔ پيشقدمئ د خلقو په زړونو کښې پيدا کړے وهٔ هغه
مستقل وهٔ. د ډيرې مودې د تيريدو نه پس د مرهټو د زړونو نه د بل احمد شاه د راتللو ويره
لاړه. او په کال 1799ء کښې ايران ته د انګريزي سفارت استولو غرض هم دا وهٔ چې د زمان
شاه په هندوستان باندې حمله کم از کم د دريو کالو دپاره ملتوي کړې. دا سفارت د کپتان
ميلکم د مشرئ لاندې ايران ته په کال 1799ء کښې تللے وهٔ او دومره روپئ او رشوتونه ئ
په ايران کښې خوارهٔ کړي وو چې هغه په خپل مقصد کښې بالکل کامياب شو. د زمان شاه د
مجوزه حملې متعلق کپتان ميلکم په اکتوبر 1800ء کښې د اصفهان نه ګورنر جنرل لارډ
ولزلي ته دا شان ليکي :

" You may rest assured that Zaman Shah can do nothing in India before the settin
in of the rains of 1801. He has not the time even if he has the power for such a
attempt; and by the blessing of God he will, for some years to come, be too muc
engaged in this quarter to think of any other."

سر جان ميلکم د خط ترجمه : " تهٔ دا تسلي لره چې زمان شاه د 1801ء د برسات نه
وړومبے وړومبے په هندوستان کښې هيڅ نهٔ شي کولے. هغهٔ سره د دې حملې کولو فرصت
نشته اګر کهٔ په هغهٔ کښې د حملې کولو زور وي هم او د خدائے په فضل به هغه په دې

طرفونو کښې تر ډېرو کالونو دومره مصروف وي چې د بل طرف به هغه هډو خیال نشي کولے."

He threw about his largeness with an unstinting hand, and every thing went smoothly with him. The further he advanced into the interior, the greater was the attention shown to the Mission, for the greater was the renown of the liberality of the Christian Elchi. Every difficulty melted away before the British Gold."

د سر جان ولیم د تحریر ترجمه : "هغهٔ خپلې نذرانې په پرانستي لاس خورې کړې او د هغه ټول کار بهٔ په ارام باندې روان شو. هر څومره چې هغه په ملک کښې دننه ورتلو هغه هومره د سفارت زیات قدر کیدلو. ځکه چې د عیسائي ایلچي د سخاوت نوم تر لرې لرې پورې خور شوے وهٔ. او د انګریزي سرو زرو په مخکښې هر مشکل اسان شو."

ایران ته د انګریزي سفارت د تلو نه پس زمان شاه داسې په خپلو خولو کښې ډوب شو او دا قسم خانه جنګۍ ئې پخپل وطن کښې پیدا شوې چې بیا ئې هندوستان ته توجه ونه کړې شوه. زمان شاه هر کله چې د فتح علي شاه د واپس کیدو خبر واؤریدو نو هغه قندهار ته واپس شو. او کال 1799ء ژمے ئې په قندهار کښې تیر کړو. وړومبے د دې نه ذکر شوے دے چې محمود د هرات د شکست نه پس ایران ته وتښتیدو او بیا د فتح علي شاه دربار ته اصفهان ته لاړو. محمود فتح علي شاه سره د خراسان په حمله کښې د هغهٔ فوځونو سره هم رکاب راغلے وهٔ. مګر د هغوي په واپس کیدو باندې هغوي سره واپس ایران ته لاړو. د ایران د بادشاه د امداد په طمع هغهٔ ډیره کافي موده په ایران کښې تیره کړه مګر فتح علي شاه اخر هغهٔ سره د امداد کولو نه انکار وکړو. بیا هغه د برجند ګورنر مهر علي خان نه امداد وغوښتو. مهر علي خان هغهٔ له لس زره فوځ په طور د امداد ورکړو. محمود دې فوځ سره د زمان شاه د هرات نه د تلو دوه میاشتې پس د هرات په طرف روان شو. شهزاده قیصر د هرات نه د هغهٔ د فوځ د مقابلې دپاره څهٔ فوځ ولیږلو. محمود دې فوځ له د اصفراز په مقام باندې شکست ورکړو. محمود په هرات باندې پیشقدمي وکړه. او قیصر سره د خپل فوځ په هرات کښې قلابند شو. په هرات کښې وفادار خان وزیر دا شان چل وکړو چې د مهر علي خان په نوم باندې ئې یو فرضي خط ولیکلو. چې د هغې مطلب دا وهٔ چې ستا او د قیصر په منځ کښې چې کوم عهد و پیمان شوے دے په هغې باندې قیصر بالکل ټینګ دے په شرط د دې چې تهٔ محمود مونږ ته حواله کړې. دا خط وفادار خان یو سړي له ورکړو او هغهٔ ته ئې ووې چې تهٔ د محمود په کیمپ ورشه او ځان د هغهٔ په سړو ګرفتار کړه. چنانچه هغه لاړو او ځان ئې د محمود په سړو ګرفتار کړو. محمود چې څهٔ وخت دا خط ولیدو نو د خط د مضمون نه په دې پوهه شو چې مهرعلي زما د حواله کولو اقرار قیصر سره کړے دے. او د دې په بدل قیصر مرزا هغهٔ له د انعام او اکرام ورکولو اقرار کړے دے. محمود مرزا ډیر سخت ویریدو او فوراً

شپه په شپه د مهر علي د کیمپ نه وتښتیدو. مهر علي چې د محمود د تښتیدو نه خبر شو نو سمدستي خپلې علاقې ته روان شو او په ډیر تکلیف باندې خپل ملک ته ورسیدو. د دې نه پس محمود پټ په پټه د تاتار ملک ته روان شو او بخارا ته ورسیدو. شاه بخارا د هغهٔ ډیر عزت او تکریم وکړو او هغهٔ له ئې د وسیدو دپاره یو محل ورکړو.

زمان شاه چې څهٔ موده پس په دې خبر شو نو شاه بخارا ته ئې یو سړے ولیږلو چې چونکې محمود باغي دے د دې دپاره تا له د هغهٔ ساتل او د هغهٔ ستا په سلطنت کښې زما د حکومت برخلاف سازشونه جوړول مناسب نهٔ دي. محمود چې د دې سړي د راتلو نه خبر شو نو د شاه بخارا د مشکلاتو د حل کولو دپاره ئې د حج د تلو بهانه وکړه او د شاه بخارا نه ئې د دې غرض دپاره اجازت وغوښتو. شاه بخارا هغهٔ له رخصت ورکړو او په دغه شان ئې ځان د محمود او د زمان شاه دواړو نه خلاص کړو. محمود بخارا نه خوارزم ته لاړو او په خیوا کښې د یو څو ورځو د پاتې کیدو نه پس بیا فتح علي شاه له ایران ته لاړو.

دا وخت د زمان شاه په سلطنت کښې اندروني طور ډیره بې چینې پیدا شوې وه. او هم په دې وجه په کال 1799ء کښې هغه د قندهار نه په دوره باندې وتلے وهٔ. وړومبے د دې نه ذکر شوے دے چې د زمان شاه دا خیال وهٔ چې د قبائلو مشرانو له د ډیرو اختیاراتو د ورکولو په وجه په ملک کښې بغاوتونه زما برخلاف پیدا کیږي. په دې وجه هغهٔ د لویو لویو قومي سردارانو نه ټول اختیارات او اعزازات اخستلي وو او نور معمولي سړي ئې لویو لویو رتبو ته د خپله لاسه خیژولي وو. د دې دپاره چې هغوي به زما لاس ته ناست وي او د هغوي ترقي او تنزل به زما په مرضئ منحصر وي نه چې د هغوي په اندروني اقتدار او طاقت او زور باندې.

احمد شاه او د هغهٔ زوي تیمور شاه به د قبائلو مشران پخپل عهد حکومت کښې همیش رضا او خوشحال ساتل د هغوي بې مصلحته به ئې کار نهٔ کولو. بلکې حکومت کښې هغوي ټول مشران ځان سره شامل کړي وو. تیمور شاه اگر چې د احمد شاه د طرز حکومت نه بیل قسم قاعده روانه کړې وه او د حکومت اختیارات ئې د قبائلو مشرانو له څهٔ قدرې کم کړي وو او زیات تر ئې خپل سړي په لویو لویو عهدو باندې مقرر کړي وو ولې بیا هم د قبائلو د مشرانو او حکومت تعلقات قطع شوي نهٔ وو. د قبائلو د مشرانو جرگې بدستور موجودې وے. هغوي سره به مشوره کیده مگر چې څهٔ به د تیمور شاه خوښه وه هغه به ئې کوله. بیا هم هغهٔ چرې هغوي له د خفگان او ناراضگی موقع نهٔ وه ورکړې. مگر زمان شاه د حکومت ټول اختیارات او واکې صرف پخپل لاس او د هغې سړو په لاس کښې ورکړې چې کوم د هغهٔ د لاسه مقرر شوي وو. د قبائلو مشران بالکل بې اختیاره وو. هغوي سره د خپلو قبیلو خلق په ډیر تعداد کښې په کابل کښې نشو وسیدلے. او هیڅ معامله کښې به هم هغوي سره جرگه نهٔ

کیدله. سره د دې ټولو خبرو د هغوي نګراني به هم پټه پټه کیدله. د هغهٔ ټول اعتبار صرف په یو سړي وهٔ چې د هغهٔ نوم وفادار خان سدوزے وهٔ. دا سړے ډیر سخت پره جنبه باز وهٔ. په خبرو کښې ډیر پوست مګر په زړهٔ کښې تک تور وهٔ. او اوضاع او اطوارو کښې ډیر ملائم مګر په حقیقت کښې د ځان نه د کم حیثیت خلقو دپاره سخت متکبر او مغرور وهٔ. بادشاه او نورو افسرانو سره به هغهٔ په ذلت آمیز عاجزۍ پیش راتلو. د داسې اخلاقو سړے همیشه بزدل، حریص او رشوت خور وي. سره د دې ټولو عیبونو وفادار خان د بادشاه دویم ځان وهٔ.

د قبائلو د مشرانو نه د اختیاراتو په اخستو کښې هم دغه وفادار خان باعث وهٔ. د هغهٔ د زندګۍ ټول مقصد دا وهٔ چې پائنده خان زهٔ ذلیل او رسوا کړم. او په ټول قام کښې د هغهٔ اقتدار او اثر کم کړم. په زمان شاه کښې یو عیب دا وهٔ چې ډیر خوشامد پسند وهٔ او چونکې وفادار په دې هنر کښې طاق وهٔ او د بادشاه په خوشامد کښې هغهٔ خپلې خودداري، عزت او ابرو ته هم نهٔ کتل. او نورو سردارانو د خپلې پښتو، د حیثیت او د خود دارۍ په وجه په دې کښې د وفادار خان مقابله نشوه کولے. په دې وجه هغه د بادشاه په مقربینو کښې داخل شو. چونکې وفادار خان د خوئ نه ډیر حریص او د هر چا د نوم حاسد وهٔ، داسې یو سردار هم نهٔ وهٔ چې د هغهٔ بدي نشو. په جنګ کښې د کمال درجې بزدل وهٔ او چونکې ډیر مکار، فریبي او منافق سړے وهٔ ټولو خلقو به هغهٔ ته د نفرت او حقارت په نظر کتل. د داسې سړي په لاس کښې د حکومت اختیار ورکول د زمان شاه سخته کوتاه اندیشي وه. د ملک لویې لویې عهدې به د وفادار خان په اختیار کښې وے. هغهٔ به ښکاره په ښکاره رشوتونه د خلقو نه اخستل. او عهدې به ئې خرخولې. د مالیې لوې لوې رقمونه به هغهٔ غبن کول او د دولتمندو خلقو نه به د هغهٔ ملازمانو په زور روپۍ او مالونه اخستل. د تشدد او د سختۍ دا طرز زمان شاه ته هم دهٔ ښودلے وهٔ. د ډیرې مودې نه د وفادار خان او د زمان شاه د دې طریقو نه د قوم سرداران تنګ وو مګر د بادشاه د مخبرانو او د وفادار د جاسوسانو دلاسه په هغوي کښې دوۀ تنو هم یو ځاے جرګه نشوه کولے. سختي او تشدد ټول عمر صرف د یو خاص وخته پورې کامیاب وي. او تر څو پورې چې د رنجش اصلي باعث لرې نهٔ کړې شي خفګان او ناراضګي به ضرور څهٔ نا څهٔ لار د خپل اظهار دپاره راوباسي.

اخر کار د کال 1799ء په اخر کښې د وفادار خان د قتل دپاره ټولو سردارانو سازش وکړو. د دې سازش باني مباني د مشهورې قبیلې بارکزئ مشر سردار پائنده خان وهٔ. پائنده خان چې د هغهٔ بل نوم سرفراز خان وهٔ سره د محمد حکیم خان د علي کوزي مشر او د امیر ارسلا خان چې د ایراني قبیلې مشر وهٔ هم شامل شول. ایلفنسټن د فیریر د رائ مطابق پائنده خان سره محمد شریف منشي باشي، یوسف علي خان د خواجه سراګانو مشر، سلطان خان نورزي او رحیم خان علي زي هم شامل وو. نائب منشي باشي یعني افسر خزانه جات د

قزلباشو سردار او د خواجه سراګانو مشر هم په دې سازش کښې شامل شو. دا خو ناممکنه وه چې دا سړے دے د وفادار خان په بې خبرئ کښې جرګه وکړې شي. پس هغوي د يو فقير چې هغه د خپلې زمانې بزرګئ دپاره مشهور وهٔ کور ته يو په يو لاړل. اکثر لوي لوي سرداران به د دې بزرګ کور ته د دعا دپاره تلل. او په دې وجه به د هغهٔ په کور کښې په جمع کيدو باندې چا څهٔ شک نشو کولے. هغوي په هنر او په دلائلو باندې دا فقير هم ځان سره ملګرے کړو او څهٔ وخت چې به دا ټول سرداران راجمع شول نو د هغهٔ د ځائے دروازه به بنده کړې شوه. د ډيرو بحثونو مباحثو نه پس دې جرګې دا فيصله وکړه چې په طرز حکومت کښې مفصله ذيل اصلاحات او ترميمونه کول پکار دي:

(۱) چې زمان شاه دې د تخت نه کوز کړې شي او شاه شجاع دې په تخت کښېنولے شي.

(۲) آئنده دې بادشاه په جرګه باندې منتخب کيدے شي او صرف د قبائلو مشران دې په جرګه کښې رائ ورکولے شي.

(۳) هر بادشاه چې د قوم د اعتبار قابل پاتې نشي قوم ته به د هغهٔ د لرې کولو اختيار وي.

د دې جرګې نه پس ټول سرداران خوارهٔ شول او يوه ورځ ئ د وفادار خان د قتل او د زمان شاه د تخت نه د کوزولو دپاره مقرر کړه. د بدقسمتئ نه په مقرره ورځ باندې دا تجويز په عمل کښې رانغے. او د دې سازش کونکي بيا را يوځائے شو. اخر وفادار خان شکمن شو. په دې سردارانو کښې پنځهٔ تنه خو د ډير کلک زړهٔ خاوندان وو او په دې ئ هيڅ پروا نهٔ وه کهٔ زمونږ راز ښکاره شي مګر يو سړے ډير بزدله وهٔ. څهٔ وخت چې دا يو سړے خبر شو چې وفادار خان شکي شوے دے. نو فوراً هغه وفادار خان له ورغے او ټول حال ئ ورته ښکاره کړو. دا سړے منشي باشي محمد شريف خان وهٔ. وفادار خان د دې سازش اطلاع فوراً بادشاه ته ورکړه او په خپله ئ دا راز ډير پټ وساتلو. هغهٔ له خدائے په يو ځل د ټولو د تباه کولو موقع ورکړه او هغهٔ غوښتل چې زهٔ د دې نه پوره فائده واخلم.

زمان شاه د دې خبرې اوريدو سره د خپلې څوکئ سپاهيان بدل کړل او نور قابل اعتبار فوځ ئ د خپل محل په پهره باندې ودرول. په دويمه ورځ هغهٔ په دې سردارانو کښې په هر يو پسې جدا جدا سړي وليږل. د ټولو نه وړومبے محمد عظيم خان د علي کوزو مشر ګرفتار شو. بيا ئ په پائنده خان پسې سړے وليږلو. دې سړي له فتح خان د پائنده خان زوے راووتلو او ورته ئ ووئيل چې پلار مې کور نشته. زهٔ ځم چې چرته ئ وګورم. بيا هغه پټ خپل پلار له راغے او ورته ئ ووئيل چې د بادشاه افسر به سره د سپاهيانو قتل کړم، سپاهيان به ئ ګرفتار کړم او بيا به د قندهار نه وتښتم. پائنده خان دا تجويز نامنظوره کړو. او هغه افسر سره بادشاه له راغے. امير ارسلان ايرانے د هغهٔ نه وړومبے په دربار کښې ګرفتار موجود وهٔ. يو څو ګينټې پس بادشاه په ډير شان او شوکت سره په تخت کښېناستلو او حکم ئ

وکړو چې ټول گرفتار شوي سرداران دې پیش کړې شي. راتلو سره هغهٔ د سردارانو نه په ډیر غیظ و غضب سره تپوس وکړو چې تاسو زما برخلاف ولې سازش کړے دے؟ هغوي ورته ووئیل چې مونږ قسم خوړلے دے چې تا به د تخت نه کوزوو مگر وژنو به دې نه. ستا د تخت نه د کوزولو اراده مونږ په دې وجه کړې ده چې زمونږ دا یقین دے چې کهٔ مونږ تا ته ډیر څهٔ ووایو خو تهٔ وفادار خان نه معزول کوے. زمونږ هرگز تا ته د نقصان رسولو اراده نهٔ وه. مگر د وفادار خان لرې کول زمونږ اصلي مراد وهٔ. ځکه چې هغهٔ په حکومت کښې ډیر لوے فتور اچولے دے او ټول خلق ترینه ناراض دي.

د دې بیان نه پس زمان شاه حکم وکړو چې د دوې نه سرونه پریکړې. چنانچه د هغهٔ په مخکښې هغوي قتل کړې شو. چونکې د بارکزو د قبیلې لوے سردار او مشر په داسې بې رحمۍ سره بادشاه قتل کړو نو د زمان شاه سره دا ویره پیدا شوه چې محمد زي به ضرور زما نه بدل اخلي. چنانچه هغهٔ د محمد زو د قبیلې د لویو لویو سردارانو د گرفتارولو حکم وکړو. مگر په هغوي کښې ډیر پټ شول او لرې لرې ملکونو ته وتښتیدل. بادشاه خاص طور د فتح خان چې د پائنده خان مشرے زوے وهٔ د گرفتارۍ دپاره ډیر کوشش وکړو مگر څهٔ وخت چې هغه د پلار د قتل نه خبر شو نو فوراً پټ شو. او ځان ته ئې ښهٔ اسونه د ښار نه بهر په یو باغ کښې ودرول او شپه په شپه گرشک ته چې درې اویا میله د قندهار نه لرې وهٔ په اتهٔ گینټې کښې ورسیدو. د هغه ځاے نه هغه د غرونو او خوړونو په لاره مارامار ایران ته لاړو او محمود سره یو ځاے شو. دا وړومبے ذکر شوے دے چې محمود د خیوا نه بیا ایران ته فتح علي شاه له راغلے وهٔ. فتح علي شاه د هغهٔ بیا ډیر عزت او احترام وکړو او په تورشیش کښې ئې ورله د وسیدو دپاره ځاے او تنخواه مقرر کړه. په تورشیش کښې فتح خان محمود له ورسیدو او د فتح خان نه پس د هغهٔ نور وروڼه هم هغهٔ پسې راغلل.

د پائنده خان او د نورو لویو سردارانو دې قتل د پښتنو په ټول قبائلو کښې سخت هیجان او جوش پیدا کړو او د زمان شاه برخلاف شول. په کابل کښې هم د زمان شاه برخلاف سخت نفرت پیدا شو او هغه فوراً د قندهار نه کابل ته روان شو. په هغه ځاے کښې چې څهٔ وخت هغهٔ انتظام قائم کړو نو د هغه ځاے نه پیښور ته راغے. د پیښور نه هغهٔ پنځلس زره فوځ کشمیر ته واستولو ځکه چې په هغه ځاے کښې هم سخت شورشونه پیدا شوي وو. دا فوځ لا کشمیر ته نهٔ وهٔ روان شوے چې عبدالله خان علي کوزے د کشمیر گورنر د بادشاه دربار ته د سلام دپاره راغے. بادشاه هغه گرفتار کړو او سزا ئې ورله ورکړه. په دې باندې د هغهٔ وررور سیدال خان چې په قندهار کښې وهٔ سره د خپلې علي کوزي قبیلې محمود سره شامل شو. د دې پنځلس زره فوځ کمان ملا احمد او میر واعظ نورزي ته ورکړې شو لیکن د ملا احمد د بې وقوفۍ په وجه دا فوځ د لارې د تکلیفونو او مصیبتونو په وجه ټول تباه شو او

د کشمیر دا مهم ناکامیاب شو.

دې خوا ته فتح خان او د هغهٔ وروڼو د زمان شاه نه د خپل پلار د قتل د بدل اخستو تیاری شروع کړې او محمود ته ئ ووئیل چې د بادشاه برخلاف تا له د غیر قومونو په امداد ملا تړل نهٔ دي پکار. بلکې تا له د افغانستان قبائلو او د خپل قام خلقو ته خواست کول پکار دي. د ډیرو جنګونو نه پس هغوي دا فیصله وکړه چې بغیر د بیروني فوځ د امداد نه مونږ له افغانستان کښې داخلیدل پکار دي. اخر محمود په دې نصیحت عمل وکړو او صرف اتلسو تنو ملګرو سره فراه ته راغے.

ایلفنستن وائي چې "محمود د یو څو تنو سره د سیستان په لاره باندې افغانستان ته راروان شو او چې جلال اباد د سیستان صدر مقام ته راورسیدو نو بهرام خان د سیستان سردار د هغهٔ ډیر شاندار استقبال وکړو او کامران د محمود زوي له ئ خپله لور ورکړه. او هغهٔ سره ئ د کومک د ورکولو خواهش ظاهر کړو مګر فتح خان د غیر قوم د خلقو په افغانستان باندې د چپاؤ برخلاف وهٔ له دې کبله هغوي د بهرام خان د فوځي امداد اخستو نه په ډیره شکریه باندې انکار وکړو. او هغوي د خپلو دراني قبیلو علاقې ته راکوز شول."

د فراه خلقو په ډیر شوق سره د هغهٔ استقبال وکړو او د قلعې دروازې ئ هغهٔ ته پرانستې. د دې ځاے نه هغهٔ د ټول پښتون قوم په نوم باندې یو اعلان شائع کړو چې په هغې کښې د وفادار خان او زمان شاه د ظلمونو او بې انصافو په ډیرو رنګینو الفاظو کښې ذکر کړے وهٔ او بیا ئ د هغوي نه د امداد سوال کړے وهٔ. د بارکزو قبیلې چې د پائنده خان نه پس هغوي فتح علي خان خپل مشر ګڼلو سمدستي د محمود د امداد کولو فیصله وکړه. او نورو دراني قبیلو هم محمود سره د شاملیدو نیت ظاهر کړو. سردار میر علي خان د زمان شاه د طرف نه د قندهار ګورنر وهٔ. محمود څهٔ وخت چې قندهار ته روان شو نو میر علي خان د څلور زرو سورو سره د هغهٔ مقابلې ته راووتو مګر محمود هغهٔ له شکست ورکړو میر علي خان قندهار ته راوتښتیدو او قلعه کښې ئ پناه واخسته. محمود د هغهٔ تعاقب وکړو او د قندهار محاصره ئ وکړه. دوه څلویښت ورځو پورې د ښار محاصره وشوه ولې ښار فتح نشو. اخر په درې څلویښتمه ورځ د محمود ټول فوځ د فتح خان د کمان د لاندې یوه سخته حمله وکړه. فتح خان وروميے سړے وهٔ چې د ښار په دیوال باندې وختو او د هغهٔ سپاهیان هغهٔ پسې ورغلل ښار په لږ وخت کښې فتح شو او میر علي خان د یو څو سورو سره په پټه وتښتیدو.

زمان شاه په دې ورځو کښې په پیښور کښې په هندوستان د حملې کولو تیاری کولې څهٔ وخت چې هغه د قندهار د فتح کیدو نه خبر شو نو د فوځ یوه حصه ئ د خپل ورور شجاع الملک د سرکردګی د لاندې پرېښودله او پخپله کابل ته روان شو. څهٔ وخت چې

هغه کابل ته ورسیدو نو هغهٔ ته معلومه شوه چې ټول قام زما نه خلاف شوے دے او نهٔ صرف زما سلطنت بلکې زما ځان هم په خطره کښې دے. د هغهٔ په فوځ کښې او د هغهٔ په خپلو ملازمانو کښې هم په دې وجه سخته بې چینې پیدا شوه او د هغهٔ ملازمان او د کور ټول خلق په ویره کښې پریوتل.

څهٔ وخت چې بادشاه د درانو په نیت پوهه شو نو د غلجونه ئ امداد وغوښتو. وفادار خان هم په ډیره ویره کښې وهٔ او د بادشاه په نسبت زیاتي هغهٔ سره د خپل ځان فکر وهٔ. د بادشاه او د وزیر محافظې دستې دوچند کړې شوې. او د هغوي په هر کار کښې به د ویرې او په هر چا باندې د اشتباه آثار ښکاره کېدل. د ډیرو جرګو او د تجویزونو نه پس بادشاه د دیرش زره فوځ سره د محمود مقابلې ته روتلو. بادشاه د خپل ذاتي فوځ نه مخکښې دوه دستې ولیږلې. د ټولو نه مخکښې دسته ئ د احمد خان نورزي د لاندې وه او بادشاه پخپله به د دې دواړو دستو نه یو یا دوه پړاوه وروستو پاتې کیدو. غالباً چې دا تجویز وفادار خان هغهٔ ته دې دپاره ښودلے وهٔ چې هسې نه چې چرته احمد خان بادشاه ونیسي او دشمن ته ئ حواله نهٔ کړي. احمد خان د وزیر وفادار خان د لاسه درګړي درګړي ناست وهٔ د ډیرې مودې نه د وفادار خان دا اراده وه چې احمد خان په څهٔ چل مړ کړم. احمد خان هم د دې نه خبر وهٔ او د وفادار خان نه ئ د بدل اخستو تجویزونه کول. مګر په دې سخت ساعت کښې وفادار خان دا خیال وکړو چې کهٔ چرې احمد خان له زهٔ د فوځ کمان ورکړم نو شاید چې هغه زما په پره کښې شامل شي په دې وجه احمد خان له ئ د هراول مشري ورکړه.

د محمود لښکر او د احمد خان هراول په سراسپ باندې مقابل شول. او احمد خان سره د خپل لښکره محمود ته واوړیدو. بادشاه چې د دې نه خبر شو نو وفادار خان د هغهٔ په زړهٔ کښې نور هم خوف پیدا کړو او په ډیر شتاب باندې ئ بغیر د څهٔ مقابلې نه بادشاه کابل ته وتښتولو. باقي فوځ چې د شهزاده ناصر لاندې وهٔ هغوي چې د وفادار خان او د بادشاه د تلو نه خبر شول نو د جنګ نه ئ انکار وکړو. .شهزاده ناصر خپل فوځ د ویرې نه پریښودو او هغه واپس کابل ته لاړو. محمود فوراً د فتح خان د سرکردګۍ لاندې دوه زره فوځ کابل ته ولیږلو او پخپله هم په دغه طرف راروان شو. زمان شاه په ډیره تیزۍ باندې مارامار د کابل نه وتښتیدو او اوږے تږے د شنوارو ملک ته راورسیدو. وفادار خان په دې ځاے بادشاه ته ووئیل چې اوس دمه خوړل پکار دي. او ملا عاشق قلا ته ئ د ارام کولو دپاره بوتلو. بادشاه سره د خپله وزیره او دوؤ وروڼو د ملا عاشق قلعې ته راغے. ملا عاشق د هغوي په ظاهره خو ډیر خاطر تواضع وکړه مګر خپل سړي ئ چارچاپیره ودرول او بادشاه ئ سره د خپل وزیر او نورو ملازمانو نظر بند وساتل او محمود ته ئ سړے ولیږلو چې بادشاه سره د خپلو ملګرو زما په قلا کښې بند دے. په دې اثنا کښې زمان شاه پوهه شو چې ملا عاشق مونږ ګرفتار کړي یو،

ډیر کوشش ئ په دې غرض وکړو چې ملا عاشق ته د پښتو ننګ ودروي. هغوي ملا عاشق ته خپل میلمه او خپل بادشاه سره د غداری نهٔ کولو په سلسله کښې ډیر منت سماجت هم وکړو مګر هغهٔ یوه هم وانهٔ وریده. د دې نه پس بادشاه کوشش وکړو چې په زور ځان خلاص کړي مګر په دې کښې هم هغه کامیاب نشو. اخر هغهٔ ځان خدائے ته وسپارلو او د واقعاتو انتظار ئ شروع کړو. د دې قید په دوران کښې زمان شاه د کوه نور لال چې په دنیا کښې یو مشهور لال وهٔ سره د خپلو نورو قیمتي جواهراتو د خپلې قید خانې په دیوال کښې چرته پټ کړل او څهٔ وخت چې شاه شجاع څهٔ موده پس بادشاه شو نو هغهٔ بیا راوویستل.

د ملا عاشق سرے چې څهٔ وخت محمود ته ورسیدو نو هغهٔ سمدستي اسد خان د فتح خان ورور قلعه عاشق ته ولیږلو او بادشاه او د هغهٔ وزیر وفادار خان وغیره ټول ئ کابل ته بوتلل. د زمان شاه کابل ته د رارسیدو نه وړومبے یو جراح سره د خپل یو افسر د هغهٔ د سترګو ړندولو دپاره د کابل نه واستولو. چنانچه د زمان شاه سترګې په لاره کښې ړندې کړې شوې. بیا ئ هغه کابل ته بوتلو. او په بالاحصار کښې ئ بندي کړو. د محمود په دوران سلطنت کښې هغه بندي وهٔ مګر د شاه شجاع د تخت نشینی نه پس هغه شاه شجاع خلاص کړو او باقي عمر ئ په ارام باندې تیر کړو. وفادار خان او د هغهٔ وروڼه کابل ته په رسیدو سره قتل کړې شو. د وفادار خان اصلي نوم رحمت الله خان وهٔ. زمان شاه د دې نه پس بیا چرې بادشاه نشو. د هغهٔ د خوئ خصلت متعلق زمونږ په خیال د فیریر مفصله ذیل رائ بالکل کافي او درست ده :

"His greatest crime was that he was absolute and would reign on that principle. This wounded the pride of the Sardars and was in opposition to the received opinion amongst them as to the extent of their sovereign power. With a different Vazeer, he might have hoped that his reign would be as long as, and possibly more, glorious than that of his father, but he was personally very brave, very active, always on horse back, bringing one war to a conclusion only to commence another; nor was he wanting in intelligence; but he lost his future chances by making the Mohammad Zai chiefs discontended for their rights to the great offices of the state were quite as sacred in the eyes of the Afghans as those of the Sadozais to the throne. The moment he endeavoured to abrogate those rights his fall became certain, but inspite of the sanguinary executions he was guilty of at the instigation of his ministers, the Afghans have a greater respect for his memory than that of any of the other sone of Taimoor Shah."

ترجمه : د هغهٔ غټ جرم دا وهٔ چې هغه بالکل خود اِختیاره وهٔ او هم په دې اصولو ئ حکومت کول غوښتل. دې د سردارانو خودداری ته ضرب ورسولو. دا اصول د هغهٔ د پښتنو د هغې مسلمې رائ عامه ته هم برخلاف وو چې کوم هغوي د بادشاه د اختیاراتو متعلق لرله. کهٔ چرې

د هغهٔ بل څوک وزیر وے (یعنې وفادار خان نهٔ وے) نو یقیناً د هغهٔ عهد سلطنت په نسبت د هغهٔ د پلار د سلطنت نه زیاتي وړد او غالباً چې زیاتي د عروج حکومت وهٔ. ځکه چې هغه ډیر بهادر، ډیر چاق او همیش به د اس دپاسه سور وهٔ. د هغهٔ یوه فوځ کشي به ختمه شوې نهٔ وه چې بله به ئ شروع کړه. د هغهٔ په عقل کښې هم څهٔ خامي نهٔ وه. مگر هغهٔ خپل ټول ژوند د محمد زو په ناراضه کولو او په خفه کولو باندې تباه کړو. ځکه چې پښتنو لکه څهٔ رنګ چې سدوزي د تاج و تخت حقدار ګڼل دغه شان هغوي د محمد زو مشران د لویو لویو عهدو مستحق ګڼل. خو چې څهٔ وخت د هغوي حقوق پامال کول ئ شروع کړل.د هغهٔ زوال یقیني شو. مگر باوجود د هغې قتلونو چې کوم هغهٔ د خپل وزیر په لمسه باندې کړي وو د پښتنو په زړهٔ کښې د هغهٔ قدر د تیمور شاه د نورو ټولو زامنو په نسبت زیات دے.

## شاه محمود

شاه محمود قریباً د اوو کالو د کوشش نه پس په کال 1800ء کښې د افغانستان په تخت کښیناستو او د شاه لقب ئ اختیار کړو. تخت نشینی سره هغهٔ خپلو ملګرو، د فوځ افسرانو او چا چې هغهٔ سره امداد کړے وهٔ هغوي له ئ ډیر انعامات ورکړل. سردار فتح خان له هغهٔ د شاه دوست خان خطاب ورکړو. او شیر محمد خان د وزیر شاه ولي خان زوي له ئ د مختار الدوله خطاب ورکړو. سردار عبدالله خان علي کوزي چې د مشهور وزیر یار محمد خان پلار وهٔ او په بالاحصار کښې د زمان شاه د لاسه قید وهٔ هغه ئ ازاد کړو او د کشمیر ګورنر ئ مقرر کړو. حاجي فیروز الدین خپل ورور هغهٔ د هرات ګورنر مقرر کړو او اکرم خان علي زے ئ خپل لوے وزیر مقرر کړو.
اوس د شاه محمود په لاره کښې شجاع الملک چې د زمان شاه سکه ورور وهٔ پاتې وهٔ. د شجاع الملک په دې وخت کښې صرف درویشت کاله عمر وهٔ او په پیښور کښې د یو معمولي فوځ سرَه مقیم وهٔ. چې د زمان شاه د مصیبتونو نه خبر شو. د زمان شاه د کور خلق او تمام شاهي جواهرات د هغهٔ په لاس کښې وو څهٔ وخت چې هغه د خپل ورور د شکست خبر واؤریدو او د هیبت نه لږ سنبال شو نو فوراً ئ خپل ځان په پیښور کښې بادشاه کړو. او شاه محمود سره ئ د جنګ تیاری شروع کړې. هغهٔ سمدستي د پیښور د ټولو لویو لویو قبائلو مشران او افریدي وغیره راوبلل او ډیر مال او روپۍ ئ په هغوي کښې تقسیم کړې. په لږه موده کښې اکثر به دراني د هغهٔ په حمایت کښې ودریدل او یو ډیر ښهٔ فوځ ئ تیار کړو او په کابل باندې ور روان شو. شاه محمود چې د دې نه خبر شو نو په زړهٔ کښې ئ هیبت پیدا شو په لسم ستمبر 1801ء کښې شجاع الملک د پیښور نه روان شو. د پیښور او د کابل په

منځکښې په نیمه لار د آشپان په مقام باندې د محمود درې زره سپاهیان د شجاع الملک لس زره لښکر سره مخامخ شول. د شجاع الملک لښکر د جنګ د قواعدو او ضوابطو نه بالکل بې خبره وۀ او اګر چې پخپلو قبائلي جنګونو کښې هغوي ډیر بهادر وو مګر باقاعده فوځونو سره چرې د هغوي مقابله نۀ وه شوې. څۀ وخت چې دواړه لښکرې مخامخ شوې نو ابتدا کښې بر درانو د شاه محمود فوځونه بالکل پسپا کړل. مګر هغوي فوراً دا خیال وکړوچې ګنې جنګ ختم شو او مونږ فتح وکړه نو لوټمار ئې شروع کړو. فتح خان د شاه محمود د فوځ سردار وۀ هغۀ سمدستي د دې نه فائده واخسته او خپلو بارکزو سړو سره ئې د شجاع الملک فوځ بالکل تس نس کړو. په ډیر مشکل سره شجاع الملک د خیبر غرونو ته وتښتیدو او هغه ځاے کښې ئې بیا د تخت اخستو منصوبې شروع کړې.

د دې معرکې نه پس د غلجو په دماغ کښې دا خبره راغله چې چونکې دراني هر وخت پخپلو کښې جنګیږي او چونکې مونږ ورومبے هم د افغانستان بادشاهي کړې ده. هیڅ وجه نشته چې د درانو په ځاے مونږ بادشاهان نشو. نو هغوي هم د تخت اخستو سازشونه شروع کړل. عبدالرحیم د غلجو د شاهي خاندان مشر وۀ. درانو هغۀ له علاوه د خپل پدري جائداد نه یو ښۀ لوے پنشن هم ورکولو. د دې سازش بنیاد د غلجو هغې سردارانو چې په کابل کښې اتفاقاً راجمع شوي وو کښیښودو. هغوي اول تاج او تخت عبدالرحیم ته پیش کړو. په ابتدا کښې خو هغۀ د دې تجویز سره اتفاق نۀ کولو مګر د خپلې قبیلې په زور سره عاقبت هغۀ غاړه کښیښوده. پس د دې نه د غلجو سرداران خپل وطن ته روان شول. او خپلې خپلې قبیلې ئې بغاوت ته ولمسولې. د څۀ مودې نه پس هغوي دوه لښکرې تیارې کړې. یو لښکر خو هغوي د قندهار د درانو د منع کولو دپاره ولیږلو او بل لښکر ئې کابل ته روان کړو. دا دویم لښکر اول په غزني باندې راوخوت او په لاره ئې واړۀ واړۀ مقامات واخستل. د غزني ګورنر له هغوي په میدان کښې شکست ورکړو. مګر د ښار خلق مقابلې ته ودریدل او غلجي د چارچاپیره ملک د تباه کولو نه پس د شیلګر او زورمل په لاره لوګر ته ورسیدل. او ډیر غلجیان ورسره په لاره کښې ملګري شول. شاه محمود د غلجو په نیت باندې بالکل ناخبره وۀ او هله د غلجو د بغاوت نه خبر شو چې هغوي په غزني باندې راوختل. د شاه محمود په دربار کښې د دې خبر په رارسیدو سره یو لوے هیبت پیدا شو. ځکه چې د شاه محمود حکومت بالکل نوے وۀ او لا په ملک کښې نظام سم نۀ وۀ قائم شوے. څۀ معمولي فوځ چې د بادشاه وۀ هغه هم هغۀ پیښنور ته لیږلے وۀ. او د یو څو غلام شاه (یعني دبادشاه محافظه دسته) نه علاوه صرف د درانو د خانانو یو څو سړي په دارالسلطنت کښې موجود وو. درانو چې د غلجو د بغاوت واؤریدل نو د دې مشترکه خطرې‌د ورکولو دپاره پخپله کښې ډیر زر متفق شول. خانان د هغوي سړي نوکران او ډیر رضاکار بې تنخواه په دې لښکر کښې شامل

شول. او قریباً د دریو یا څلورو زرو یو لښکر د مختار الدوله د مشرۍ د لاندې په دولسم د نومبر 1801ء کښې د غزني په لوري روان شول. مګر هغوي ته دا پته ولګیده چې غلجیان د لوګر په لاره کابل ته را روان دي. د دې په اوریدو سره شاهي فوځ خپل رخ بدل کړو او د سجاون په مقام غلجو سره هغوي مخامخ شول. د غلجو لښکر قریباً شل زره وهٔ. مګر ټول پیاده وو. ډیرو سره پکښې وسله هم نهٔ وه. او د هیڅ قسم تنظیم په هغوي کښې نهٔ وهٔ. درانیانو خپل لښکر په دریو حصو کښې تقسیم کړو او ټول په ترتیب په صفونو کښې ودریدل. څرخي توپې ئې د فوځ په مخکښې ولګولې او د غلجو د لښکر د حملې په انتظار ودریدل. غلجیان په ډیرې بې ترتیبۍ او بدنظمۍ هم دغه شان په درانو رامات شول. تر دې پورې چې د توپو نه ور واوریدل. او د درانو په صفونو ئې یوه سخته حمله وکړه. د درانو کوم صفونه چې هغوي ته مخامخ پراتهٔ وو هغوي د دې حملې د زوره په شا شول. او قریب وه چې غلجو فتح حاصله کړې وې مګر د درانو د ښي او ګس لاس فوځونه چې لا سالم پراتهٔ وو هغوي د غلجو د لښکر نه چاپیره شو. او ټولې لارې ئې د هغوي د واپس کیدو بندې کړې. د غلجو حمله په دې باندې پسپا شوه. مګر هغوي شکست ونهٔ خوړو او ټول په جمع قلعه زرین نومې یو قلعې ته قریباً شپږ میله د میدان جنګ نه لرې راواپس شول. درانو د څهٔ حده پورې خو هغوي پسې تعاقب وکړو مګر غلجو ته څهٔ خاص نقصان ونهٔ رسیدو. او د درانو لښکر واپس شو. په شپه کښې غلجو له د خپل چارچاپیره علاقې نه کومکونه راغلل. سبا له هغوي د قلعه زرین نه راروان شول او په یوه بله لار باندې ئې نیغه کابل ته لار واخسته او د درانو لښکر ئې په ځاے پریښودو. هغوي ماښام ماښام ته د کابل نه یو څو میله فاصله باندې قلعه شاهي ته راورسیدل. د درانو لښکر بې خبره ټوله ورځ هم پخپل ځاے پروت وهٔ. په سبا چې هغوي د غلجو د تللو نه خبر شو نو ډیر په شتاب باندې ئې ځان قلعه امین الملک ته چې د کابل او د غلجو په مینځکښې وه ځان وررورسولو. غلجو په درانو باندې د حملې کولو په ځاے په چارچاپیره کلو کښې لوټ شروع کړو او هر څومره چې عبدالرحیم هغوي د منع کولو او په تنظیم کښې د راوستو کوشش وکړو مګر ټوله شپه او ورځ هغوي بې سره په چارچاپیره علاقه کښې وګرځیدل او د خلقو نه په زور مالونه او اسبابونه وشوکول. په سبا باندې د هغوي مشران ځان ځان له د درانو په لښکر راپریوتل او چونکې نهٔ د هغوي یو خاص سپه سالار وهٔ او نهٔ د هغوي په فوځ کښې څهٔ خاص ترتیب وهٔ او نهٔ د قواعدو پابندي وه بلکې هر یو خان به د خپل خپل ټبر د لښکر مشري کوله. په دې وجه د هغوي په حمله کښې نهٔ ربط وهٔ او نهٔ اشتراک عمل. په لږ ساعت کښې درانو هغوي له سخت شکست ورکړو. د غلجو درې زره سرې په میدان جنګ کښې قتل شو او باقي ټول خپلو خپلو علاقو ته وتښتیدل. درانو بیا په کابل کښې د هغې باغیانو د سرونو یوه مُناره جوړه کړه کوم چې په میدان جنګ کښې قتل

شوي وو.

چونکې اوس ژمے رانزدې شوے وۀ د دې دپاره د دې دواړو قومونو په منځکښې بیا څۀ قابل ذکر چیړ چاړ ونۀ شو. د کال 1802ء په سپرلي کښې غلجیان هم بیا داسې ناساپه راوچت شول لکه څنګه چې وړومبے راوچت شوي وو مګر دا ځل هغوي په یو خاص نظام باندې کار شروع کړو. په دې بغاوت کښې د غلجو قریباً قریباً ټول قبائل شامل شول. او تقریباً پنځوس زره لښکر ئې جمع کړو. هغوي دا ځل خپل فوځ په دریو حصو کښې تقسیم کړو او دا تجویز ئې وکړو چې د فوځ یوه د سته دې د عبدالرحیم د مشرۍ د لاندې په کابل باندې د سهیل د طرف نه حمله وکړي. او بله دسته دې د فتح خان بابا ک.زۍ د لاندې د نمرخاتۀ نه او اولس زره غلجي دې دراني پخپله علاقه کښې قندهار طرف نه د رامنځکښې کیدو نه منع کړي. د دي هر یو لښکر په مقابله کښې د درانو هم یو یو فوځ راووتلو. درې معرکې قریباً قریباً یو ځاے وشوې. او په درې واړو کښې غلجو شکست وخوړو. اخري جنګ د غلجو او د درانو په منځ کښې په یولسم د مۍ 1802ء کښې د ملا شاهي په مقام باندې وشو. او اخري ځل غلجو ماتې وخوړه. د د.ې نه پس غلجي چرې پا نۀ څهدل او د درانو حکومت ئې په ځان په خوښۍ سره قبول کړو.

هم په دې زمانه کښې د شاه محمود په ټول سلطنت کښې داسې یوه صوبه هم نۀ وه چې په هغې کښې جنګ نۀ وۀ. شاه شجاع هم د. 1802ء په سپرلي کښې سره د دولسو زرو افریدو په پیښور حمله وکړه.د پیښور د ښار باقاعده فوځ د هغوي مقابلې ته ووتلو. یو سخت جنګ وشو او افریدو شکست فاش وخوړو. او بیشانه ډیر خلق ترینه په میدا ن کښې مړۀ شول. شاه شجاع بیا خپل ځان په ډیر مشکل د افریدو ملک ته ورسولو.

اُزبکو هم د پښتنو د خانه جنګو او د بې اتفاقو نه فائده واخسته. او د 1802ء په سپرلي کښې هغوي د دریائے جیحون نه بیا راپورې وتل. د هغوي برخلاف هم فتح خان فوځونه ولیږل او اُزبک ئې د دریائے جیحون نه پورې ایستل.

ایرانیان هم په دې زمانه کښې چپ نۀ ...ږ ناست. څۀ وخت چې پښتانۀ په خپلو کښې سره لګیا وو او یو تر بله ئې چکونه لګول نو ایرا نیانو په ایرانٔي خراسان باندې حمله وکړه او په یو چپاؤ کښې ئې ټول خراسان لاندې کړو. مشهد او نیشاپور ئې فتح کړل. نادر مرزا او د هغۀ اتۀ دیرش تربوران چې ټول د نادر ش اه د ټبر نه وو د ایران بادشاه بندیان کړل. او په تهران کښې ئې ماسوائ د یو معصوم بچي ه ټول قتل کړل. مشهد ایرانیانو د 1802ء په موسم ګرما کښې د پښتنو نه واخستو. ا ږ فتح علي شاه خپل یو زوے په مشهد کښې د خراسان ګورنر مقرر کړو. بلوچو هم دا خیال ، وکړو چې دې بادشاه ګردۍ کښې مونږ ولې فائده وانخلو چناڼچه هغوي هم شاه محمو د د سلطنت د منلو نه انکار وکړو او ځان ئې د

پښتنو نه بیل کړو.

په هرات کښې د شاه محمود د فتوحاتو په وخت قیصر مرزا د شاه زمان زوے گورنر وهٔ میر افضل خان چې د قیصر مرزا وزیر وهٔ هغهٔ په سازش او پخپل زور او طاقت قیصر مرزا د هرات د حکومت نه وویستو او پخپله ئ ځان د هرات حاکم کړو. مگر د هرات خلقو د افضل خان د حکومت د منلو نه انکار وکړو. او افضل خان ته ئ ووئیل چې زمونږ حاکم دې د شاهي خاندان یو سړے وي. چنانچه افضل خان حاجي فیروزالدین چې د شاه محمود ورور وهٔ پسې سړي ولیږل. او د هرات قبضه ئ هغهٔ له ورکړه. قیصر مرزا چې دا ولیدل چې په هرات باندې فیروزالدین زما ترهٔ قابض شو نو د پښتنو او د خراسانیانو یو لښکر ئ راجمع کړو او په هرات راوختلو. حاجي فیروز الدین د هرات نه یویشت میله قبلې ته شکي وار نومے یو کلي سره د هغهٔ مقابلې ته راووتلو او هغهٔ لره ئ شکست ورکړو.

ناظرینو ته دې دا معلومه وي چې په ملک کښې چارچاپیره د دې جنگونو انتظام او د هغوي مقابلې ته فوځونه لیږل د شاه محمود د دماغ کار نهٔ وهٔ. هر کله چې هغهٔ کابل فتح کړو نو هغهٔ د سستي او د بیکارۍ ژوند تیرول خوښ کړل. شپه او ورځ به په شرابو کښې مخمور وهٔ. سپاهیانه زندگي هغهٔ بالکل پریښوده. او د قزلباشو خویونه او اوضاع او اطوار ئ په ځان کښې پیدا کړل. د سلطنت ټولې واگې ئ اکرم خان علي زي او فتح خان بارکزي ته ورکړې. په اکرم خان کښې د درانو د خانانو اکثر خویونه موجود وو. په خوئ کښې ډیر خوږ او بهادر وهٔ او د خپلې رائ خاوند وهٔ. په خرڅ اخراجات کښې معتدل وهٔ مگر شوم نهٔ وهٔ. په پره جنبه کښې ډیر مضبوط وهٔ. او د پښتنو ټول صفتونه په هغهٔ کښې موجود وو. د فتح خان د خویونو او عادتونو ذکر به په یو آئنده باب کښې مونږ وکړو. په دې ځاے کښې دومره وینا بس ده چې کهٔ چرې فتح خان بارکزے د شاه محمود ملگرے نهٔ وے نو هغهٔ د افغانستان په تخت باندې یوې ورځې له هم نشو کښیناستې. په ټول افغانستان کښې د فتح خان نه په خپله زمانه کښې زیاتي قابل او بهادر سړے بل نهٔ وهٔ. په خرڅ اخراجات کښې هغه بالکل حاتم طائي ثاني وهٔ او د خپلې پرې د خلقو هغه دومره خوښ وهٔ چې د هغهٔ په وینا باندې به ئ د خپل سرومال په داؤ کولو کښې هیڅ دریغ نهٔ کولو. د سلطنت په امورو کښې دې دومره ویښ او بیدار مغز سړے وهٔ چې د سلطنت په هیڅ گوټ کښې به داسې کار نهٔ کیدلو چې په هغې به دې فوراً خبر شوې نهٔ وهٔ. په قد کښې وچت او ډیر خوش شکل سړے وهٔ او په وجود کښې سړے وهٔ په خبرو اترو کښې ډیر خوش اخلاق، په وضع قطع کښې ډیر ساده په زړهٔ کښې بالکل بې ویرې او د خطرې په وخت کښې ډیر مستقل مزاج انسان وهٔ. د سلطنت ټول اختیارات د دې دوؤ سړو په لاس کښې وو. په دارالخلافه کښې د هغهٔ ټول داروه‌دار په قزلباشو سپاهیانو باندې وهٔ چونکې شاه محمود هم د خپل پلار پشان د پښتنو خویونه بالکل

پـريښـودي وو او شپـه او ورځ به د هغهٔ ناسته پاسته د قزلباشو سره وه. د دې دپاره د هغهٔ اکثر دوستـان او هـمراز د قزلباشو مشران او د فوځ افسران وو. د دې تعلقاتو په وجه د قزلباشو اثر په کابل کښې ورځ تر ورځ زياتيدو. د هغوي اثر نهٔ صرف په بادشاه او د هغهٔ د ټبر په خلقو وهٔ بلکې د بادشاه د تعلقاتو په وجه د هغهٔ اکثر سرداران هم د هغوي د اثر د لاندې شول.

پـه پښتـنـو کښې د فارسی ژبې، د شرابو، د ارام پسندی او د عيش و عشرت مزه هم دې خـلـقـو اچـولې وه. او د پښتنو لوے لوے سرداران ئې دا رنګ په خپل رنګ کښې رنګ کـړي وو چې د هغوي نه ئې د پښتنو خوئ خصلت او رواجونه څهٔ چې خپله ژبه هم هيره کړې وه. د دې خـلـقـو پـه صـحبت کښې بادشاه د خپل رعايا د بهبودی او خوشحالی نه بالکل بې پـروا او بې خبره وهٔ. او د کابل د اخستو نه پس هغه بيا هيڅرې هم پخپله جنګ له نهٔ وهٔ تلے. تـر دې وخته پورې لا د سلطنت په لرې لرې صوبو کښې د حکومت نظام نهٔ وهٔ قائم شوے. او چـونـکې بـادشـاه پخپله د خپل عيش او د ارام نه د حکومت په کارونو کښې څهٔ دلچسپي نهٔ اخستـلـه د دې دپـاره په علاقو کښې د امن قائمولو کار د فتح خان او اکرم خان په ذمه وهٔ. او چـونـکې دا دواړه سـرداران د يـوې پـرې نـه وو د دې دپـاره د هـغوي پخپل منځکښې به هم نـاچـاقي وه. د ډير بحث مباحثې نه پس بادشاه فتح خان ته حکم ورکړو چې هغه دې سره د يو لښـکـره جنوب مشرقي صوبو ته د امن قائمولو دپاره لاړ شي. او اکرم خان دې په کابل کښې پـاتې شـي. فتح خـان وړومبے پيښور ته راغے او د هغه ځاے د خلقو نه ئې څهٔ مال ټول کړو. حـاکـم کشـمـيـر نـه ئې پـنـځوس زره روپۍ واخستې. بيا هغه کوهاټ، بنو او دامان ته راغے او مـالـيـه ئې ټـولـه کړه. ډيره موده ئې د وزيرو په رعيت کولو کښې ولګيده. په لاره باندې ئې هر طـرف تـه نـظام حکومت قائمولو. او اخر د کال 1803ء د ګـرمـی په موسم کښې قندهار ته راورسيدو او په هغه ځاے کښې ئې ټول درانې سم کړل.

شـاه شـجـاع چه دويم شکست اوخوړو نو هغه چورې ته چه د افريدو په علاقه کښې يو کـلے دے لاړو. هغهٔ سره يو څو ملګري هم وو. مګر معلوميږي چې هغه بيا د خپل غربت او د سـړو د کـموالي په وجه د بادشاهی د اخستو نه نااميده شوے وهٔ. د هغهٔ اکثر وخت به عالمانو سـره په خبرو اترو کښې تيريدلو. څهٔ وخت چې فتح خان پيښور ته سره د لښکره راغے نو په چـوره کښې هم د هغهٔ وسيدل ناممکن شو. پس هغه په غرونو غرونو کښې د کاکړو ملک ته لاړو. د هـغـهٔ او د هـغـهٔ د سـړو ګـزاره پـه دې ټوله زمانه کښې د شاهي جواهراتو په خرڅولو باندې وه. د 1802ء د ژمي تـر مـوسم پورې هغهٔ د شال (کوئټې) په خواؤشا کښې هم په دې شـان وسـيـدلـو. هـغـهٔ مير ابـوالـحسـن خـان کوئټې ته د څهٔ کالو (زيوراتو) د خرڅولو دپاره واستـولـو مګر هغه ځاے کښې د هغې څوک خريدار پيدا نشو. بادشاه او د هغهٔ ملګري اوس دا وخـت ډير تـنـګ شـوي وو. نـو چې ورتـه مـعـلـومه شوه چې کالي هم خرڅ نشول نو ډير

پریشانه شول. ملکري ئ ټول راجمع کړل او جرګه ئ وکړه یو ورته ووئیل چې د کوئټې په ښار یوه لویه قافله نن راغلې ده. پکار دي چې هغه مونږ لوټ کړو. شاه شجاع د دې تجویز نه بالکل خلاف وهٔ مګر چونکې د هغهٔ ملګري ډیر وړي وو او څو څو ورځې ئ ډوډی نهٔ وه خوړلې ټول د کوئټې د ښار نه راچاپیره شول او د قافلې نه ئ ټول مال واخستو. شاه شجاع هغې ټولو سوداګرو له رسیدونه د خپلې نامې ورکړل او هغوي سره ئ اقرار وکړو چې هر کله زهٔ بادشاه شم نو تاسو له به د دې مال تاوان درکوم. چنانچه څهٔ وخت چې شاه شجاع بادشاه شو نو چې کومو سوداګرو به ورته خپلې رقعې وښودلې نو هغهٔ له به ئ تاوان ورکولو. دا د لوټ مال تقریباً د دوؤ لکو روپو وهٔ. شاه شجاع په دې باندې فوراً یو لښکر راجمع کړو او په قندهار باندې ئ حمله وکړه مګر بالکل ناکام پاتې شو. شاه شجاع بیا غرونو ته وتښتیدو او هم دغه شان بې سروسامانه ګرځیدلو چې یوه عجیبه نادره واقعه په کابل کښې پیښه شوه.

د شاه محمود قزلباش فوځ لکه څنګه چې وړومبے ذکر شوے دے د خپل طاقت او زور او د بادشاه د مهربانو په وجه ډیر زیات مست شوے وهٔ. هغوي به په بازار کښې خلقو سره د غیر قوم د سپاهیانو په شان ډیره سختي او تشدد کولو. او چرې به چې ورته موقع حاصله شوه نو د سختو بدچلنو او جرائمو ارتکاب به ئ کولو. دا خلق به اکثر د شرابو په نشه کښې بازارونو ته راوتل او د قوم د خلقو بې عزتي او بې حرمتي به ئ کوله. د خلقو مالونه به ئ په زور اخستل او کهٔ چرې به بادشاه ته د هغوي برخلاف څهٔ شکایت وشو نو هغهٔ به هیچرې هم د خلقو په فریاد غوږ نهٔ کښیښودو. بادشاه پخپله د هغوي د عادتونو خصلتونو او طرز زندګۍ ګرویده او مفتون وهٔ. او چونکې د خپل حفاظت دارومدار هم هغهٔ په هغوي باندې ګڼلو د دې دپاره هغهٔ د هغوي خفه کول او ناراض کول په هیڅ شان نهٔ غوښتل. د حد اعتدال نه د قزلباشو دې تجاوز عام رعایا کښې ډیر سخت خفګان او بې چیني پیدا کړه. قزلباش په عقیده کښې شیعه ګان وو او عام رعایا سنیان وو. په دې وجه باندې د هغوي عادات او اطوار د هغوي برخلاف د خلقو په زړهٔ کښې سخت نفرت او رنجش پیدا کړو. هره ورځ به په حجرو او جماعتونو کښې د قزلباشو سپاهیانو برخلاف خبرې کیدې او د هغوي د بدچلنو او د خرابو خویونو ذکرونه به کیدل. او دې سره به دا هم وئیلې شو چې بادشاه د هغوي ملګرے دے.

The Ghulami Shah's (The King's Qazal Bash Guards) who joined the voilence of their military habits to the natural licentiousness of their nation were guilty of the greatest excess and raised utmost indignation among the inhabitants of Kabul who were now more irritated by their capacity and oppression, than disgusted with their contempt for decency and sobriety, which their prejudices led them to look on with peculiar aversion........... Frequent complaints were made of the conduct of the Ghulams but were disregarded by Mahmood whose natural

indolence was strengthened by his fondness for the manners which disgusted his subjects and by the fear of offending those troops which he considered as the best support of his power. (Ferrier)

ترجمه : غلام شاهي (يعني د بادشاه قزلباش محافظ دسته) چې په هغوي کښې د فوځي خشنګۍ نه علاوه نورې خپلې قومي بدچلنۍ هم پرتې وې. هغوي په خپلو سختو بې اعتدالو د کابل په خلقو کښې د نفرت يوه جذبه مشتعله کړه. عام خلق اوس زيات د هغوي د ظلم او تعدۍ نه په نسبت د هغوي د بدمعاشانو او شراب خورو تنګ وو. هغوي به د دې غلام شاهي په خلاف ډير شکايتونه استول خو محمود په يو هم غوږ نۀ کښېښودو او د دې وجه دا وه چې يو خو هغه سست وۀ او بله دا چې هغه پخپله هم د هغوي د هغې اخلاقو ګرويده وۀ چې د کوم په سبب د هغۀ ټول رعايا ناراض وو. علاوه د دې نه هغه د دې خپل فوځ ناراضه کولو نه هم ويريدو. چې د هغۀ د اقتدار د ساتلو دپاره بهترين پشتي وه.

دا ټول وراني هغوي د شاه محمود په چشم پوشي باندې کوي. مليانو به ځاے په ځاے په وعظونو او په خطبو کښې هم د قزلباشو او د بادشاه برخلاف د هغوي د بدچلنو، بدمعاشو او بداخلاقو متعلق تقريرونه کول. په دې پروپيګنډه کښې زورور او لوے سرداران هم شامل شول. منجمله د هغوي نه سردار احمد خان نورزے او نواب خان ګلړے هم وو. دا دواړه سرداران د احمد شاه د وخت درباريان وو او د زړو درانو پښتنو ټول عادتونه اخلاق او خصلتونه ئې لرل. مګر د دې دواړو نه زيات د شورش اصلي مشر مختار الدوله شير محمد خان وۀ. په دې زمانه کښې اکرم خان مړ وۀ او فتح خان بهر په صوبه جاتو کښې په دوره وۀ. شير محمد خان د شاه ولي خان چې د احمد شاه وزير اعظم وۀ زوے وۀ. او خپل ځان ئې د وزارت د عهدې مستحق ګنړلو. مګر د اکرم خان د مرګ نه پس د وزارت عهده بادشاه فتح خان له ورکړه. په دې وجه هغه هم په زړۀ کښې د بادشاه نه خفه وۀ. دا سړے په عامو خلقو کښې ډير زيات هردلعزيز وۀ. د هغۀ بهادري او شجاعت په خلقو کښې مشهور وۀ او يو ډير قابل فوځي جرنيل هم وۀ. د وضع قطع نه نهايت ساده وۀ، اکثر به په معمولي جامو کښې بغير د شان او شوکت نه عامو پښتنو سره کښېناستو پاځيدو. د هغۀ زيات تر مجلس به علماؤ فضلاؤ او فقيرانو سره وۀ. پخپله هغه ډير عالم فاضل او سياست دان وۀ. څۀ وخت چې هغه د شاه محمود په لويو مشيرانو کښې وۀ نو معمولي نه معمولي سړي ته هم هغۀ ته په رسايي کښې څۀ مشکل نۀ وۀ. اکثر به په بازار کښې پياده او بغير د نوکر نه ګرځيدو. هر چا سره به هغۀ ډير ښۀ سلوک کولو او د هغۀ د دولت اکثره حصه به د خلقو مهمان نوازۍ او د غريبانو په پرورش صرف کيده. خپلو دشمنانو سره به هم هغه په ډيره خوش اخلاقۍ پيش راتلو. او هغوي سره به ئې هم د بدو کولو نه حتي الوسع ګريز کولو. عين د اقتدار په وخت کښې به هغۀ خپل دشمنان نۀ صرف د سابقه جرمونو د سزا نه معاف کول بلکې د هغوي بدرد او ترخې

خبرې به ئ هم په مجلس کښې په خنده پيشانئ سره اوريدلې. د خپل پلار د مرګ نه پس هغه د څهٔ مودې دپاره بلوچستان ته تښتيدلے وهٔ. د جلاوطنۍ په زمانه کښې هغهٔ دومره کتابونه ولوستل چې د افغانستان په ټول سلطنت کښې ډيرو کمو مليانو د هغهٔ د علم او فضل مقابله کولې شوه. هغهٔ به د بزرګانو اوعالمانو ډير قدر کولو او بالخصوص هغه د سيد احمد چې په افغانستان کښې يو ډير بزرګ او عالم سړے مشهور وهٔ معتقد او دوست وهٔ.

سيد احمد المعروف مير واعظ ډير ځله حج له هم تللے وهٔ. او خپلو نيکو خصلتونو او درويشانه ژوند په وجه او د دنياوي جاه و جلال نه د لاپروايئ په سبب هغه د کابل په مضافاتو کښې ډير لوے نوم پيدا کړے وهٔ. او په کومې ازادئ سره به چې هغه د بادشاه او د هغهٔ د درباريانو د بدو عادتونو برخلاف نکته چيني کوله. او کومې دليرئ او جرأت سره به چې هغهٔ د لويو لويو خلقو د بدچلنو، رشوت ستانو او بد اخلاقو ذکرکولو نو د هغې په وجه د خلقو هغه ډير زيات خوښ وهٔ. خلق چې څهٔ وخت د شيعه ګانو قزلباشو د ظلم نه تنګ شو نو مير واعظ د قام په پره ودريدو او بادشاه ته ئ د خلقو شکايات پيش کړل. په دې باندې هغه نور هم هردلعزيز شو.

شاه محمود چې باوجود د خلقو د فريادونو د رعايا چاره جوئي ونکړه نو خلق ډير زيات خفه شول او د بادشاه برخلاف ئ قسم قسم خبرې شروع کړې. هم په دې ورځو کښې دا شان چل وشو چې يو سني يو قزلباش قتل کړو او د هغهٔ په سزا کښې هغه سني پانسي شو. په دې باندې سنيان ډير برافروخته شول. او د هغهٔ د پانسئ ټوله ذمه واري ئ په شاه محمود وغورځوله. ډير خلق د دې سني جنازې سره په جلوس کښې ووتل. په دې جلوس باندې قزلباشو ډزې وکړې او جلوس سره د جنازې د مير واعظ کور ته دننه شول. دې واقعې د سنيانو صبر تمام کړو او د قزلباشو په ځايونو او کورونو باندې چپاؤ وکړو او ټول ئ لوټ کړل. ټوله شپه قزلباشو شيعه ګانو او د سنيانو په منځ کښې جنګ وشو. او ډير خلق يو خوا بل خوا ته مړهٔ شول. په دويمه ورځ د چارچاپيره علاقې نه بيشانه ډير کوهستانيان او سنيان د خپلو سنيانو امداد له راغلل. په دې شورش کښې مختار الدوله احمد خان نورزي او نواب خان ګډي ټول خلق د قزلباشو قتلولو او لوټ کولو ته ولمسول. دواړو فريقو ټوله ورځې ډير خونريز جنګ وکړو. او چونکې د ګرمئ موسم وهٔ مابنام مابنام ته ټول خلق ستړي شول او پخپله سره جدا شول. دا د شلورم او پنځم جون واقعه ده. د دې شروشور په دوران کښې مختارالدوله شاه شجاع له سړي واستول. چې فوراً راشه خلق د شاه محمود برخلاف دي او په کابل کښې يو سړے هم د هغهٔ ملګرے نشته. شاه محمود پخپله هم د دې فساد په کيدو ويريدو. هغهٔ کوشش وکړو چې مختارالدوله ګرفتار کړم مګر مختار الدوله پوهه شو او په اتم د جولايئ د کابل نه وتښتيدو. مير واعظ د مختار الدوله ډير دوست وهٔ اوس هغهٔ خلق د

بادشاه برخلاف ولمسول او د خلقو ئ دا یقین راوستو چې قزلباش دا هر څۀ چې د خلقو سره کوي دا د بادشاه په وینا او د هغۀ په چشم پوشی باندې کوي. په دولسم جولائي مختار الدوله سره د شاه شجاع د کابل خواوشا ته راورسیدو. او د ښار نه بهر مقیم شو. شاه محمود په بالاحصار کښې پناه واخسته او خلق د هغۀ نه چاپیره شول. فتح خان چې په قندهار کښې وۀ هغۀ هم د شیعه ګانو او د نورو رعایا د جنګ نه خبر شوے وۀ او سره د لښکره د ډیرو ورځو نه د کابل طرف ته روان وۀ. شاه شجاع هم یو لښکر د مختار الدوله په مدد سره د فتح خان د مقابلې دپاره تیار کړو. فتح خان سره قریباً د اتو نه تر لسو زرو پورې خلق وو. دواړه فوځونه مخامخ شو. فتح خان د شاه شجاع د لښکر یوه لویه حصه پسپا کړه او ښار ته په ورننوتو کښې وۀ چې د هغۀ یو لوے لښکر د شاه شجاع په طرف واوړیدو. فتح خان سره اوس د خپل ځان غم شو او د میدان نه وتښتیدو. سبا نه شاه شجاع سره د مختار الدوله په ډیر شان و شوکت سره په کابل کښې داخل شو. د شاه شجاع په رسیدو سره د بالا حصار دروازې پرانستې شوې. او محمود د قلعه په برنی حصه کښې بندیوان کړې شو. شاه شجاع غوښتل چې د خپل ورور شاه زمان بدل د شاه محمود نه واخلي او د هغۀ سترګې هم ړندې کړي مګر د مختار الدوله په سفارش هغه معاف کړې شو. شاه شجاع پخپله سوانح عمری کښې د دې جنګ متعلق دا شان لیکي:

"After his arrival at Qazee we had scarcely prepared our force when Fateh Khan's Army appeared our troops were immediately up in battle array and an attack made upon them. The battle lasted from morning to the evening prayer, when the enemy gave way and retreated in great disorder to the valley advaz and then to Kamran's camp in Qandahar. Where the drunkenness of Qazalbash soldiery and the ill treatment which the sunnie doctors received soon disgusted all our subjects. Who entirely refused to give Kamran assistance, on hearing this we immediately returned to our capital, Shah Mahmood was so disheartened by the news of our victory, that after swearing on the Koran we would not again be guilty of treachery, he sent some of his principal attendants to request the Royal Pardon which we granted, and had him conveyed from the outer to the inner fort with all due respect to his rank. We then entered the Bala Hisar with Regal Pomp, and seated ourselves on the throne of Kabul."

ترجمه: هر کله چې مونږ قاضي ته راورسیدو نو مونږ لا خپل لښکر په مشکله تیار کړے وۀ چې د فتح خان لښکر راښکاره شو. سمدستي مونږ په جنګي صف بندی کښې رایو ځاے شو او په هغوي مو حمله وکړه. جنګ د سحر نه د ماښام تر مانځۀ پورې وشو اخر دشمن ماتې وکړه او په ډیره بې ترتیبی سره درۀ اډواز ته پسپا شول او د اډواز نه قندهار ته د کامران کیمپ ته وتښتیدل. په قندهار کښې هم د قزلباشو سپاهیانو د شراب خوری په سبب او

سنیانو علماؤ سره د هغوي د بدسلوکئ په وجه زمونږ ټول رعایا سخت ناراض شول. او کامران سره ئ د مرستې کولو نه انکار وکړو. چې مونږ دا خبره واؤریده نو مونږ سمدستي خپل صدر مقام ته واپس شو. شاه محمود چې زمونږ د فتح خبر واؤریدو نو ډیر زړۀ باتللې شو او په قرآن باندې ئ قسمونه وخوړل چې بیا به هیڅرې بغاوت نۀ کوم او مونږ له ئ خپل مشران نوکران د معافئ غوښتو دپاره راواستول او مونږ هغه معاف کړو. بیا مونږ هغه د قلعه د بهرنئ حصې نه دننه حصې ته بنۀ په مناسب عزت او درناوي راوستو. د دې نه پس بیا مونږ په شاهي شان و شوکت بالاحصار کښې داخل شو او د کابل په تخت باندې کښیناستو.

د شاه شجاع په تخت نشین کیدو باندې په ملک کښې امن و امان قائم نۀ شو. د خلقو زړونو نه د حکومت ټول رعب داب د بدامنئ په وجه ورک شوے وۀ. په فوځ کښې تنظیم او ضبط د ادنيٰ نه ادنيٰ درجې ته رسیدلے وۀ. په سردارانو کښې بې اتفاقي هغه شان موجوده وه. هر یو به دا کوشش کولو چې خپل اختیار او اقتدار زیات کړم. په کوم عزت او احترام سره به چې وړومبے بادشاه او درانیانو ته کتلې شو هغه احترام اوس د خلقو د زړونو نه لاړو. د دې نه علاوه چونکې شاه شجاع د مختارالدوله او د هغۀ د پرې د خلقو په امداد سره په تخت ناست وۀ او مختار الدوله او د هغۀ سرو ته هم دا معلومه وه چې بغیر د هغوي د امداد نه شاه شجاع په تخت نشو کښیناستې. په دې وجه مختارالدوله او د هغۀ د ټولو ملګرو د بادشاه نه ډیر ډیر امیدونه لرل. او چونکې د سلطنت عهدې د ټولو دپاره کافي نۀ وے د دې دپاره شاه شجاع مجبور شو چې د خپل حکومت د مالیې اکثر حصه خپلو مددګارانو له په جاګیرونو کښې ورکړي. دغه شان د پیښور ټوله مالیه هغۀ افریدو ته ورکړه او د اکثرو نورو ځایونو مالیه هغۀ درانو سردارانو ته په جاګیر کښې وبخښله.

د شاه شجاع حکومت په حیثیت مجموعي بغیر د ډیرې خونریزئ نه شروع شو مګر چونکې د خانه جنګو په وجه د حکومت بنیادونه بالکل خوځیدلې وو او په ملک کښې عام طور باندې بدامني وه په دې وجه هغۀ ته په علاقه کښې د امن و امان قائمولو په لار کښې ډیر مشکلات پیښ شول. شاه شجاع پخپله یو نیک دله او دروند خویه بادشاه وۀ په هغۀ کښې کۀ عیب وۀ نو هغه دا وۀ چې هغۀ په مختلفو سردارانو کښې دشمنئ او بې اتفاقي نشوه ورکولے. په سردارانو کښې اندروني طور باندې پرو جنبو د حکومت په انتظام کښې ډیر مشکلات پیدا کړي وو او چونکې د بادشاه خپل ځان له رسوخ او طاقت لا نۀ وۀ قائم شوے د دې دپاره هغۀ نۀ یو ناراض کولې شو او نۀ ئ بل خفه کولې شو. مختارالدوله د هغۀ د حکومت په ابتدا کښې د ټولو سردارانو او د مشرانو د رضا کولو کوشش وکړو او کۀ چرې شاه شجاع هغۀ له تر اخره پورې پرانستې واګې ورکړې وے نو امید دے چې شاه شجاع به تر ډیرې مودې پورې په امن و امان سره حکومت کړے وۀ. مګر د لږې مودې تیرولو نه پس په

شاه شجاع باندې د مختارالدوله دا وسیع اختیارات ځانې نشو او د هغوي دوارو په منځکښې هم کشیدګي پیدا شوه. د دې نه علاوه فتح خان باوجود د دې نه چې هغهٔ یو ځل د دهٔ اطاعت اختیار کړو مګر د هغهٔ د رضا کولو او ځان سره د ساتلو کوشش هغهٔ بیا ونهٔ کړو. معلومیږي چې شاه شجاع په ابتدا کښې خو لوي لوي اختیارات خپلو سردارانو له د حکومت په معاملو کښې ورکړل مګر څهٔ وخت چې هغه پخپلو پښو د ودریدو قابل شو نو د یو یو نه ئې درجه په درجه اختیارات اخستل شروع کړل. د هغوي فرائض ئې تقسیم کړل. او نور سړي ئې د خپله لاسه د هغوي په ځاې مقرر کړل. په دې وجه د هغهٔ د حکومت په اخري کالونو کښې نهٔ صرف د سردارانو په خپل منځکښې جګړې او حسدونه پیدا شول بلکې د بادشاه او مختارالدوله او د هغهٔ د پرې د سردارانو په منځکښې هم سخت بغض او حسد پیدا شو. هم دغه اسباب د هغهٔ د حکومت د زوال باعث شول.

شاه شجاع چې تخت نشین شو نو د ټولو وړومبې ئې شاه زمان خپل ورور راخلاص کړو او ملا عاشق چې شاه زمان ئې شاه محمود ته حواله کړې وهٔ ګرفتار کړو او قتل ئې کړو. ماسوا د دهٔ نه شاه شجاع هیچا له هم سزا ور نهٔ کړه. پس د دې نه هغهٔ د خپل پلار نیکهٔ په سلطنت کښې د امن قائمولو کوشش شروع کړو. وړومبی فوځ کشي هغهٔ د قندهار برخلاف وکړه. دا ښار لا هم هغسې د شهزاده کامران چې د شاه محمود زوې وهٔ او دفتح خان بارکزي په قبضه کښې وهٔ. بادشاه ئې قیصر مرزا چې د زمان شاه زوې وهٔ قندهار ته ولیږلو. مګر قیصر مرزا لا قندهار ته نهٔ وهٔ رسیدلې چې هغهٔ ته خبر راورسیدو چې کامران مرزا د قندهار خلقو د خپله ښاره وویستو. د دې وجې نه قیصر مرزا بې دزه بې ډوزه په قندهار کښې داخل شو. شاه شجاع هغه د قندهار ګورنر مقرر کړو. کامران مرزا فراه ته وتښتیدو. او په هغه ځاې کښې په دې انتظار کښې وسیدو چې په مناسبه موقع باندې بیا په قندهار حمله وکړي. فتح خان پخپله د شاه شجاع اطاعت قبول کړو. او د هغهٔ دربار ته راغې. شاه شجاع له اوس پکار وهٔ چې هغهٔ فتح خان خپل زیر احسان کړې وې او هغهٔ سره ئې دا قسم سلوک کړې وې چې هغه د هغهٔ د قبضې او رسوخ نه نهٔ وې وتلې. فتح خان هم د بادشاه نه صرف هغه اعزازات غوښتل چې کوم د هغهٔ پلار پائنده خان له زمان شاه په ابتدا کښې ورکړي وو. مګر چونکې فتح خان او مختارالدوله په خپلو کښې ناراض وو د دې دپاره بادشاه د هغهٔ مطالبات نامنظور کړل هرکله چې فتح خان ته خپل ځان په دربار کښې بې اختیاره او بې اقتداره ښکاریدو نو د څهٔ مودې نه پس هغه خفه د دربار نه لاړو او ګرشک کښې ئې استوګنه اختیار کړه. فتح خان خو د اکرم خان په سفارش شاه شجاع خپل دربار ته راوستو ولې د شاه شجاع غرور او تکبر بیا هغهٔ ته د دې خبرې اجازت ور نهٔ کړو چې فتح خان سوه د خپلې رتبې مطابق سلوک وکړي. چنانچه هغهٔ لکه چې څنګه وړومبې ذکر شوې دې دلګیر او ناراض د

هغهٔ د دربار نه وتښتیدو او ځان ئې بیا د شاه محمود او د هغهٔ د زوي کامران په ډله کښې شامل کړو. د بادشاه فتح خان د خپله لاسه دا رنګ غورځول ډیره لویه غلطي وه لکه چې د آئنده واقعاتو نه هغهٔ ته ثابته شوه. په جنوري کال 1804ء کښې بادشاه قریباً دیرش زره فوځ په پېښور کښې سندھ او کشمیر کښې د امن قائمولو دپاره تیار کړې وهٔ او بالکل روانیدو ته تیار وهٔ چې په قندهار کښې شهزاده قیصر د هغهٔ خپل ورارهٔ بغاوت وکړو. د قندهار په حکومت کښې شهزاده قیصر سره بادشاه احمد خان نورزے وزیر مقرر کړے وهٔ دا هم هغه احمد خان نورزے وهٔ چې د زمان شاه نه شاه محمود ته عین د جنګ په وخت کښې اوړیدلے وهٔ مګر چونکې هغهٔ د شاه شجاع په راتلو کښې بیا ډیر امداد کړے وهٔ د دې دپاره هغه شاه شجاع معاف کړو. او شهزاده قیصر سره ئې د وزارت په عهده مقرر کړو. فتح خان شهزاده قیصر ته د ګرشک لمسه وکړه. چې تهٔ د زمان شاه زوے او د تاج و تخت اصلي وارث ئې احمد خان ګرفتار کړه او خپل ځان بادشاه کړه. چنانچه شهزاده قیصر احمد خان ونیولو او ډیرې لویې بیرې ئې ورته واچولې او خپل ځان ئې بادشاه کړو. د دې نه پس قیصر او فتح خان په کابل باندېورروان شو او عجیبه خبره دا ده چې د روانیدو نه وړومبې هغوي احمد خان پریښودو. او د قندهار حکومت ئې هغهٔ ته حواله کړو. د احمد خان زوے چې د پلار د ګرفتارۍ نه خبر شو نو قدرتي طور باندې شاه شجاع ته واؤړیدو او د قیصر او فتح خان په مقابله کښې د شاه شجاع فوځ سره راووتلو. قیصر او فتح خان شکست وخوړو. د قیصر او فتح خان د شکست نه پس بادساه بې د خپل حکومت د مشرقي صوبو د تسخیر دپاره په ډیر جدوجهد تیارے شروع کړو. مګر ډیر زر خبر شو چې قیصر او فتح خان په قندهار کښې بیا زور نیولے دے او هغوي په کابل باندې د حملې تیاري کوي. هغه بیا قندهار ته روان شو او بلا تکلیف ئې په ښار قبضه وکړه. شهزاده قیصر خپل ځان بادشاه ته حواله کړو او معافي ئې ترینه وغوښته چنانچه بادشاه هغهٔ سره ډیر د محبت سلوک وکړو او بیا ئې هغه د قندهار حاکم مقرر کړو.

د دې نه پس بادشاه بیا د سندھ علاقې طرف ته متوجه شو. د سندھ تالپوري سردارانو د ډیرې مودې نه خپل خراج د پښتنو د خانه جنګو په وجه نهٔ وهٔ ورکړے. او څهٔ وخت چې شاه شجاع تخت نشین شو نو بیا ئې هم د هغې په ادائیګۍ کښې لیت و لعل کولو. شاه شجاع دیرش زره لښکر سره په سندھ باندې چپاؤ وکړو ولې د جنګ نه وړومبے تالپوري سردارانو خپل وزیر ولي محمد خان شاه شجاع ته راولیږلو. او درې لکو او شل زره پونډونو په ادائیګۍ باندې بادشاه سره فیصلهٔ وکړه. بادشاه د دې نه پس سمدستي کابل ته راغلو او د شمالي قبائلو شورشونه ئې رفع کړل.

هم په دې ایامو کښې چې لا د قندهار معامله خاطر خواه فیصله شوې نهٔ وه چې د شاه

بـخارا د طرفه سفيران د شاه شجاع دربار ته راغلل او د شاه بخارا د طرف نه ئ دا پيغام راوړو چې د افغانستان او د بخارا د حکومتونو په منځکښې د دوستئ فـمولو دپاره مناسب دي چې د شـاه بـخـارا لور دې شاه شجاع په نکاح کښې واخلي او د افغانستان د شاهي خاندان يوه بي بـي دې شـاه بـخـارا تـه پـه نکاح کښې ورکړې شي. شاه شجاع د شاه بخارا لور سره د نکاح تـجـويـز خـو مـنـظـور کـړو ولـې د خپل خاندان د جينئ ورکولو نه ئ په ډيره ښه طريقه انکار وکړو.

ايـلـفـنستن په غلطئ سره دا خبره د سندهـ د علاقې د معاملاتو د تصفيې نه پس درج کړې ده. حالانکې شاه شجاع پخپله سوانح عمرئ کښې دا واقعه د هغې زمانې بيانوي هر کله چې قيـصـر بغاوت کړے وۀ. شاه شجاع هم په دغه اثنا کښې قندهار ته رارسيدلے وۀ چنانچه هـغۀ د قندهار حکومت بيا قيصر ته سپرد کړو. شاه شجاع په خپله سوانح عمرئ کښې د دې واقعې متعلق دا رنګ ليکي :

"We again give him charge at the request of our queen mother and our brother Shah Zaman. On our return to Kabul Akram Khan and the other Khans petitioned us to pardon Fateh Khan who was now reduced to poverty. We assented. He was then brought into the presence by Akram Khan."

تـرجـمه : " مونږ د خپلې مور او خپل ورور شاه زمان په سفارش بيا هغۀ ته دا ځاے حواله کړو مـونږ چې څۀ وخت کابل ته واپس شو نو اکرم خان او نورو خانانو مونږ ته خواست وکړو چې اوس فتـح خـان ډيـر عاجز شوے دے او معاف ئ کړه مونږ منظوري ورکړه. بيا هغه اکرم خان زمونږ په حضور کښې پيش کړو.

څـۀ مـوده پس حاجي فيروزالدين چې په هرات کښې خودمختار حاکم وۀ هغۀ ته مور ووئـيـل چـې مـحـمـود خپـل ورور پـه هـر شـان چې وي د کابل د قيد خانې نه راخلاص کړه. چنانچه هغۀ يو لوے لښکر تيار کړو او ملک قاسم مرزا خپل زوے او کامران مرزا خپل ورارۀ ئ د هـغې سالاران مقرر کړل. شهزاده قيصر د قندهار نه د هغوي د مقابلې دپاره راووتلو او د هرات په لښکر باندې ئ قلعه عظيم سره حمله وکړه مګر قيصر شکست وخوړو او په قندهار بـانـدې مـلـک قـاسـم او کـامـران قبضه وکړه. حاجي فيروزالدين ته هيله لا د دې فتح خبر په مشـکـلـه رسيـدلے وۀ چـې هـغـۀ ته معلومه شوه چې محمد ولي مرزا د خراسان ايراني ګورنر جـنـرل د هـرات په طرف باندې سره د يو لوے فوځ راروان دے. پس هغۀ خپل زوے او ورارۀ واپـس د قـنـدهار نه راوبلل او قيصر مرزا بيا قندهار ته راغے. حاجي فيروز الدين خپل ټول ښۀ فـوځ کـامران او خپل زوي ملک قاسم سره ليږلے وۀ او هغه د هغوي په انتظار کښې وۀ چې د ايـرانـيـانـو د نـزدې رارسيدو نه خبر شو. هغۀ زر زر د ايماک د قبائلو يو څو زره سوارۀ راجمع کـړل او اووۀ سوه درانو سره د هغوي مقابلې ته ورووتل. ايرانيان په شمار کښې ډير زيات وو

د ایرانیانو او پښتنو په منځکښې یو ډیر سخت جنګ وشو او اګر چې د پښتنو پښتون فوځ ډیر لږ وۀ مګر درانو د ایرانیانو په قلب باندې داسې سخته حمله وکړه چې د ایرانیانو وړومبے او دویم صف بالکل مات شول او عین د ایراني لښکر په منځکښې ورننوتل چونکې ډیر زیات وو هغوي د پښتنو نه څلور واړه طرف ته چاپیره شول او یو درانے ئ هم ژوندے پرې نۀ ښودو. د دراني دستې د تباه کیدو نه پس ایماک هم وتښتیدل. او حاجي فیروزالدین هرات ته راواپس شو. پښتنو په دې جنګ کښې ډیره بهادري وکړه مګر چونکې کامران او ملک قاسم میدان جنګ ته په وخت را ونۀ رسیدے شو په دې وجه پښتنو شکست وخوړو. صوفي اسلام چې یو ډیر لوے پیر وۀ او د اُزبکو ملا چې یو ډیر لوے عالم وۀ په دې جنګ کښې په ډیره بهادرۍ سره، سره د خپلو خپلو لښکرو د ایرانیانو مقابله وکړه. مګر صوفي اسلام په جنګ کښې مړ شو او د هغۀ لاش ایرانیانو له په لاس ورغے، هغوي د هغۀ لاش ټوټې ټوټې کړو او بیا ئ وسیزلو.

ایرانیانو فوراً د هرات د محاصرې تیارې شروع کړې. مګر ملک قاسم اوس راواپس شوے وۀ. ایماکو او درانیانو ځان سنبال کړے وۀ او یو ډیر ښۀ منظم فوځ ئ د ایرانیانو مقابلې ته راوویستلو. حاجي فیروزالدین په ایراني فوځ باندې د مخې نه حمله وکړه او نور د هغوي په شا راپریوتل. ایرانیان پسپا شول او څلور توپې او ډیر سرې ترینه په میدان کښې پاتې شول. د ایرانیانو دې حملې د پښتنو په ټول قوم کښې ډیر جوش او هیجان پیدا کړو مګر چونکې په ټول ملک کښې د پښتنو ترمنځه خانه جنګۍ او دشمنۍ وے او په هره صوبه کښې د خودغرضۍ او د ذاتي عزت افزایۍ دور دوران وۀ په دې وجه هیڅ متفقه کارروائي د ایرانیانو برخلاف ونشوه. ایرانیان د دې شکست نه پس واپس شول او چارچاپیره علاقه ئ په واپسۍ کښې تباه او برباد کړه.

د دې نه لږه موده پس فتح خان بیا د شاه محمود په تخت باندې د کښېنولو کوششونه شروع کړل. قیصر مرزا په دې زمانه کښې د شاه شجاع په ډیرې وفادارۍ سره فرائض ادا کول. چنانچه هغۀ یو ځل فتح خان په دې وجه ګرفتار کړو او قریب وه چې د خپل پلار د سترګو ړندولو بدل ئ ترینه اخستې وے چې فتح خان قیصر ته سوال جواب ولیږلو چې ماله تۀ جیلخانې ته ملاقات له راشه. قیصر چې فتح خان سره خبرې شروع کړې نو فتح خان د خپل فصاحت او بلاغت دومره اثر په هغۀ واچولو چې نۀ ئ هغه صرف ازاد کړو بلکې د هغۀ په زړۀ کښې ئ بیا د کابل د تاج و تخت د اخستو شوق پیدا کړو. فتح خان د خلاصیدو نه پس ګرشک ته لاړو او قیصر سره ئ په کابل باندې د حملې کولو تجویزونه پټ پټ وکړل. مګر قیصر مرزا په دې موده کښې د سردار خواجه محمد خان ډیر زیر اثر وۀ. هغۀ قیصر مرزا قطعي طور د دې نه منع کړو په دې فتح خان د قیصر مرزا نه بیا ډیر سخت

خفه شو او د کامران ملګرے شو. کامران په فراه کښې وۀ هغۀ فوراً یو لښکر تیار کړو او د قندهار نه یو څو میله اخوا په عیدګاه کښې ئ ډیره ولګوله. مګر داخل قیصر فتح خان څان له راوغوښتو او په جرګه او منت باندې ئ هغه د کامران د ملګرتیا نه منع کړو. فتح خان بیا کامران ته سړے واستولو او ورته ئ ووئیل چې زۀ اوس ستا امداد نشم کولے. مګر کامران په قندهار باندې د راتلو او جنګ کولو اراده په دې پرې نۀ ښوده. فتح خان په دې خفه شو او بغیر د قیصر مرزا د فوځ نه ئ خپلو سړو سره توره په لاس د کامران په فوځ حمله وکړه د کامران فوځ شکست وخوړو. او هغه پخپله فراه ته وتښتیدو. فتح خان اوس بیا قیصر مرزا سره راز باز شروع کړو او هغۀ ته ئ د کابل تخت پیش کړو مګر خواجه محمد خان بدستور هغه په دې سازش کښې د شاملیدو نه منع کړو.

د دې جنګ وجدل په دوران کښې بادشاه بیا په پېښور کښې د کشمیر د تسخیر تیارې کولې. څکه چې عبدالله خان د محمود د لاسه د کشمیر ګورنر مقرر وۀ او د شاه محمود د قیدیدو نه پس هغۀ د شاه شجاع حکومت نۀ منلو. مختارالدوله پخپله کشمیر ته د فوځ بوتللو خواهش لرلو. مګر سردار اکرم خان چې د بادشاه ډیر منظور نظر وۀ هغه د مختار الدوله په تللو باندې ناراضه وۀ په دې وجه ئ بادشاه د مختارالدوله د لیږلو نه منع کړو مګر چونکې بادشاه پخپله هم کشمیر ته د ملک د اړې ګړې په وجه د تللو خواهشمند وۀ د دې دپاره د ډیر بې سود بحث مباحثو نه پس هغۀ هم مختارالدوله د لس زره فوځ سره د کشمیر د اخستلو دپاره روان کړو.

د مظفر آباد په مقام باندې د عبدالله خان د فوځ یوه دسته په یو ډیر مضبوط ځاے باندې پرته وه. مګر د یو زبردست جنګ نه پس مختارالدوله د کشمیر فوځ له شکست ورکړو او مخکښې روان شو. وړاندې لاره ټوله د غرونو او درو نه ډکه وه نو د مختارالدوله او د هغۀ لښکر ته ډیر مشکلات په لاره پیښ شول. مګر هغه په ډیر استقلال سره په خپله د خپل فوځ په مخکښې روان شو چونکې هغه څاني د فوځ په تکلیفونو کښې شامل وۀ نو لښکر هم هغۀ پسې د هیڅ تکلیف پروا ونکړه. او د جهلم غاړې ته راورسیدو. عبدالله خان د جهلم نه پورې غاړه پروت وۀ. دا دواړه لښکرونه تر ډیرو ورځو د سیند په یوه غاړه او بله غاړه پراتۀ وو. اخر عبدالله خان یوه شپه په سیند باندې پُل جوړ کړو او خپل فوځ ئ راپورې ویستو او د شا د طرف نه د مختارالدوله په فوځ باندې راپریوتلو. د مختار الدوله د فوځ اکثره حصه چارچاپیره علاقې ته د خرڅ خوراک دپاره وتې وه. څۀ وخت چې عبدالله خان د هغۀ د شا د طرف نه راښکاره شو نو هغۀ سره په مشکله سل تنه هم نۀ برابریدل. دې سلو تنو سره مختار الدوله د عبدالله خان مقابلې ته ووتلو او جنګ ئ ورسره وچیړلو. په دې اثنا کښې د مختار الدوله فوځ ورو ورو کیمپ ته واپس راغلل او په جنګ کښې شامل شول. عبدالله خان په

ابتدا کښې د مختار الدوله د زوي عطا محمد خان زير کمان فوځ له شکست ورکړو مګر مختار الدوله بيا ډير زر خپل سرې راجمع کړل او پخپله د فوځ وړاندې شو او داسې سخته حمله ئې په عبدالله خان باندې وکړه چې د کشمير فوځ له ئې بالکل شکست ورکړو. او په دريائے جهلم کښې ئې ورروغورځول. د عبدالله خان ډير سړي په سيند کښې ډوب شول او عبدالله خان په خپله سره د خپل فوځ قلابند شو. چونکې مخکښې ژمے راروان وۀ د دې دپاره مختار الدوله د محاصرې بنۀ خاطر خواه انتظار ونۀ کړې شو. په مخکښې سپرلي کښې هغۀ په قلعه باندې حمله وکړه مګر تر دوؤ مياشتو پورې عبدالله خان او د هغۀ فوځ زبردسته مقابله وکړه. په دې اثنا کښې عبدالله خان مړ شو. د هغۀ د مرګ نه پس دوه مياشتې پورې نور د هغۀ فوځ مقابله وکړه اخر په دې شرط باندې صلح وشوه چې د عبدالله خان د کور خلق او نورو سردارانو له دې په کابل يا پېښور کښې د وسيدو اجازت ورکړې شي. د دې شرط په بنۀ شان سره تعميل وشو او کشمير د شاه شجاع په حکومت کښې شامل شو. عبدالله خان ډير لائق او بهادر سړے وۀ د هغۀ د انصاف او عدل خبرې تراوسه پورې کشمير کښې مشهورې دي. او ټول درانې د هغۀ د سخاوت او خوش اخلاقۍ قائل دي. هغۀ د عالمانو او فاضلانو ډير قدر کولو او په درانې سردارانو کښې ډير هردلعزيز وۀ.

فتح خان په دې اثنا کښې بيا د کامران ملګرے شوے وۀ او په قندهار باندې ئې حمله کړې وه او قندهار ئې اخستے وۀ او قيصر کابل ته راغلے وۀ. مختارالدوله چې څۀ وخت د کشمير په فوځ کشۍ باندې تللے وۀ نو اکرم خان د بادشاه زړۀ د هغۀ نه تور کړے وۀ او په دې وجه هغۀ مختارالدوله ته بنۀ نۀ کتل. څۀ وخت چې مختارالدوله د کشمير نه واپس راغے نو هغه په دې خبر شو او د بادشاه برخلاف ئې منصوبې شروع کړې.

د کامران په قندهار باندې د قبضې کولو نه پس بادشاه پخپله قندهار ته روان شو او بغير د تکليف نه ئې قندهار واخستو. مختارالدوله کابل ته راغے او شهزاده قيصر سره ئې راز باز جوړ کړو او د کابل د تاج و تخت طمع ئې ورته ورکړه. بادشاه د قندهار نه سنده ته روان شوے وۀ مګر لا سنده کښې وۀ چې خبر ورته راغے چې مختارالدوله قيصر په کابل کښې بادشاه کړو او په پېښور باندې هم هغوي قبضه وکړه. بادشاه فوراً د سنده نه د پېښور رُخ وکړو او د فروري 1808ء په اخر کښې ئې بيا په پېښور باندې قبضه وکړه. بادشاه په پېښور کښې وۀ چې مختارالدوله او قيصر دولس زره لښکر سره د پېښور په خواوشا کښې تهکال سره راښکاره شو.

په دريم مارچ 1808ء د بادشاه او قيصر فوځونه مخامخ شول په اوله حمله کښې شاهي فوځونه مات شول او قريب وه چې بادشاه ميدان پرېښې وے چې مختارالدوله يو څو تنو سړو سره په ډيرې بې احتياطۍ عين په بادشاه باندې حمله وکړه. د بادشاه نه ګير چاپيره چې

کوم خانان موجود وو هغوي په ډېره بهادرۍ سره د بادشاه د بچ کولو کوشش وکړو او مختارالدوله په ګولۍ ولګيدو او مړ شو. شاهي فوځ په دې ډېر زړور شو او د قيصر فتح په شکست باندې ب .له شوه. بادشاه په ډېرې خوشحالۍ پېښور ښار کښې دننه شو او د مختارالدوله سر ئې په نيزه کښې ټومبلے د خپل ځان نه وروستو او د فوځ په وړاندې راوړو.

په دې واقع د بادشاه رعب په پېښور کښې مسلم طور باندې قائم شو. مګر کشمير باندې د مختارالدوله د فريق هغه شان قبضه وه. چونکې په کابل او قندهار کښې هم هغه شان بې چينې وه هغهٔ د کشمير رُخ ونهٔ کړو. د مختارالدوله دوست ميرواعظ چې په کابل کښې وهٔ هر کله چې هغه د مختارالدوله د شکست او قتل نه خبر شو نو هغهٔ ټول بنديوان شهزادګان خلاص کړل او په ښار کښې د بادشاه د مقابلې دپاره ئې تيارۍ شروع کړې. مګر څهٔ وخت چې شاهي فوځونه د کابل خواوشا ته راورسيدل نو ميرواعظ سره د قيصر مرزا کوهستان ته وتښتيدل. او تر ډېرې مودې پورې ئې د شاهي فوځونو مقابله وکړه. اخر کار د بادشاه په ترغيب باندې قيصر مرزا راکوز شو او ځان ئې بادشاه ته وسپارلو. په دې ځاے کښې دا ذکر کول هم مناسب دي چې شاه محمود د دې نه وړومبے د قزلباشو په امداد سره د قيد نه په يو ډېر چل او هنر سره ځان ازاد کړے وهٔ. دې قزلباشو محمود له پټ پټ داسې اوزار ورکړے وهٔ چې هغهٔ د خپلې جيلخانې د ديوال لاندې لوے سرنګ وکړو او څهٔ وخت چې د هغهٔ محافظان بهر په څوکۍ ولاړ وو نو هغه ښار ته ورداخل شو. هرڅومره چې شاه شجاع د هغهٔ په ګرفتارۍ پسې ملګونه ولټول مګر هغهٔ قزلباشو سره هم په کابل کښې ځان پټ کړے وهٔ. درې څلور ورځې پس چې د شاه شجاع مخبران ټول نااميده واپس شول نو شاه محمود جنوبي افغانستان ته وتښتيدو. فتح خان بيا د هغهٔ په مرسته شو او په قندهار باندې ئې حمله وکړه. چنانچه هغهٔ قندهار واخستو شاه شجاع د دې خبر په اوريدو سره قندهار ته روان شو د قندهار نه نمرخاتهٔ طرف ته د شاه شجاع او شاه محمود فوځونه مقابل شو. شاه محمود بيا شکست وخوړو او قندهار واپس د شاه شجاع قبضه کښې راغے. شاه شجاع بيا د هرات رُخ وکړو ولې د حاجي فيروزالدين په درخواست او د خراج د ادائيګۍ په وعده شاه شجاع د هرات اراده پريښوده.

شاه شجاع د دې نه پس سندهـ ته د تلو اراده وکړه. مګر چونکې د هغې ماليه په وخت باندې راورسيده. هغه د کابل په لار پېښور ته روان شو. او په لسمه جنورۍ 1809ء کښې پېښور ته راورسيدو. په دې زمانه کښې انګريزانو د هندوستان اکثر ملک تر لدهيانې پورې اخستې وهٔ. او د ټولو مسلمانانو او هندوانو په حکومتونو باندې ئې قبضه کړې وه. مګر د دوئ حکومت ته اوس يوه نوې خطره پېښه شوې وه. د فرانس شهنشاه نپولين او د روس بادشاه اليګزنډر د ايران په لاره باندې په هندوستان د حملې کولو تجويز کړے وهٔ. پس

انګریزانو د دې خطرې نه د ځان بچ کولو دپاره دا کوشش کولو چې افغانستان سره عهدوپیمان وکړي او د هغوي په ذریعه د روس او د فرانس د حملې تدارک وکړي. پس د هندوستان انګریزي حکومت یو سفارت په پنځویشتمه فروری کال 1809ء د آنریبل مونټ سټیورټ ایلفنسټن د مشرۍ د لاندې د راجپوتانې سندهـ او د ډیره غازي خان، ډیره اسماعیل خان په لاره د کوهاټ په دره پیښور ته راواستولو. او شاه شجاع سره ئې د دوستۍ عهدوپیمان وکړو.

په جولائي 1807ء کښې د دریائے نیمن په منځکښې د تِلسټ ښار په خوا کښې چې د پرشیا په ملک کښې واقع دے د یو ډیر خونریز جنګ نه پس چې په هغې کښې د طرفینو نه تقریباً پنځوس زره فرانسیسیان او رومیان قتل شوي وو. شهنشاه روس الیګزنډر او د فرانس شهنشاه نپولین پخپله کښې سره ملاقات وکړو او چونکې دواړه بادشاهان د جنګ نه سخت ستړي شوي وو د یو څو ورځو د عارضې صلح نه پس هغوي په خپل منځکښې راضي نامه وکړه. دواړو بادشاهانو یو بل سره د دوستۍ او د محبت د اظهار په نیت وردۍ بدلې کړې. او لوي لوي ضیافتونه ئې یو بل له ورکړل. هرکله چې د صلح په جشن کښې د دواړو بادشاهانو فوځونو خوشحالۍ کولې د هغوي بادشاهانو په خپلو کښې د مشترکه فتوحاتو کولو نوي نوي تجویزونه جوړ کړل. هم په دې مقام باندې نپولین او شهنشاه روس په منځکښې په هندوستان باندې د شریکې حملې کولو فیصله وشوه او د دې خبرې تړون هم وشو چې د روس او د فرانس فوځونه د دې غرض دپاره د ایران په ملک کښې یو ځاے کیږي. چنانچه دا فیصله وشوه چې د لوشن بونا پارټې د نپولین د وړور په مشرۍ کښې دې یو مشن ایران ته لاړ شي او بیا دې په مخکښې سپرلي کښې د دواړو ملکونو فوځونه هم ولیږلې شي.

کومه عهد نامه چې کپتان میلکم په کال 1799ء کښې د انګریزانو د طرف نه ایران سره کړې وه هغه په هندوستان باندې د زمان شاه د حملې د خطرې لرې کولو دپاره شوې وه. څۀ وخت چې دا خطره لرې شوه نو بیا انګریزانو د خپل دستور او عادت مطابق د خپلې عهدنامې د شرطونو پوره کولو هیڅ لحاظ ونۀ ساتلو او کوم فرائض چې په هغوي باندې د دې عهدنامې د شرطونو متعلق عائد کیدل د هغې په پوره کولو کښې انګریزانو لیت و لعل شروع کړو. کوم د دوستۍ تعلقات چې د دې دواړو سلطنتونو په منځکښې قائم شوي وو هغه وړور وړو د حکومت هند د لاپروایۍ او د ایران د مصیبتونو نه د ګورنر جنرل بې توجهی بالکل تباه کړل. د اتلسمې صدۍ د اخر نه روسیانو د پیټر دي ګریټ د زړې پالیسی مطابق د خپل مشرقې مقبوضاتو د توسیع کوششونه بیا شروع کړل. د ډیر خونریز او وحشیانه ظلمونو او قتلونو نه پس روس بالاخر د ایران نه د جارجیا د علاقې په اخستو کښې کامیاب شو او پال

زار روس دا لویه صوبه باقاعده طور سره 1800ء کښې خپل ملک سره شامله کړه. د ایران نه د دې صوبې په شو کولو سره د روس او د ایران سرحدونه بالکل ولګیدل. او اوس ایران سره د خپل تول ملک ویره پیدا شوه. دې خوا د روس خلهٔ د ایران زرخیز ولې کمزورې ملک ته اوبهٔ اوبهٔ کیده. نتیجه هم هغه شوه چې کومه تول عمر شوې ده. روس ورو ورو د ایران نه یوه یوه علاقه یوه یوه ضلع اخستل شروع کړل او چونکې په ایران کښې د مقابلې طاقت نهٔ وهٔ. هغوي به د خپل دردناک داستان تماشه کوله او روس به ترینه کله ګوته پریکړه کله لاس. کله غوږ او کله پښه. اخر ایران ته رایاد شو چې مونږ انګریزانو سره په څهٔ زمانه کښې د دوستۍ عهدوپیمان کړے وهٔ. راشئ چې هغه بیا انګریزانو سره نوي کړو او هغوي ته خپل فرائض ور په یاد کړو. څکه کهٔ چرې روس د ایران په اخستو کښې کامیاب شو نو بیا د هندوستان هم خیر نشته. چنانچه د دې غرض دپاره هغوي یو خپل سفیر حاجي خلیل خان حکومت هند سره د دوستۍ عهدوپیمان تازه کولو دپاره رالیږلو.

حاجي خلیل خان بمبئ ته په یویشتمه مئ 1802ء کښې راورسیدو مګر د بدقسمتۍ نه په شلم جولائي 1802ء د هغهٔ د ایراني محافظې دستې د سپاهیانو او د کمپنۍ د هغې سپاهیانو په منځکښې چې کوم کمپنۍ د هغهٔ د حفاظت دپاره را استولي وو جنګ وشو. او څهٔ وخت چې هغه د دې شر دفع کولو دپاره د خپلې کمرې نه راووتو نو هغه د کمپنۍ د سپاهیانو دلاسه قتل شو. حکومت هند ته د دې واقعې ډیر افسوس وشو. هغوي سمدستي میجر میلکم د حاجي خلیل خان وارثانو له د همدردۍ کولو او د یو مناسب تاوان ورکولو دپاره بمبئ ته رالیږلو او سرکاري طور سره ئې د حاجي موصوف په مرګ باندې د غم اظهار وکړو.

د یو سفیر مرګ د خپل یو اتحادي حکومت د سپاهیانو د لاسه څهٔ معمولي واقعه نهٔ وې. په داسې معامله کښې نهٔ صرف د مقتول وارثان رضا کول ضروري وي بلکې د کوم بادشاه چې هغه مقتول نمائنده یا سفیر وي د هغه بادشاه طبع تسلي هم مناسب وي. له دې کبله تر ډیرې مودې پورې د حکومت ایران او د حکومت هند په منځکښې په دې خبره لیکل رالیکل وشو. وروستي وړومبے خو لارډ ډلهوزي ګورنر جنرل هند د دې واقعې نه ډیر متاثر شوے وهٔ او د هر قسم عذر معذرت او مالي معاوضې ورکولو ته تیار وهٔ ولې هرڅومره موده چې په دې واقعې تیریدله نو معامله سریدله او اخر هر کله چې د ایران حکومت د حاجي خلیل خان د مرګ نه پس د هغهٔ اوښے آغا نبي خان کلکتې ته راواستولو نو سر جارج بارلو چې د ولزلي په ځاے اوس د هندوستان ګورنر جنرل شوے وهٔ نهٔ خو آغا نبي خان سره سیاسي عهدنامه وکړه او نهٔ ئې د ایران د حکومت مالي مطالبات منظور کړل. بلکې د ایران د مطالباتو په ځاے ئې د ګورنمنټ هند. قریباً یو لک روپۍ قرضه په ایران ورواړوله. آغا نبي خان په

څلورم اکتوبر 1805ء کښې بمبۍ ته رسيدلے وۀ او رسمي طور باندې کلکته کښې په اتويشتم اپريل 1806ء ګورنر جنرل ته پيش کړې شو او ناکامياب په څلورم جنورى 1807ء واپس ايران ته لاړو. ايرانيانو ته د دې نه وړومبے معلومه شوې وه چې چونکې اوس انګريزانو ته د پښتنو د حملې ويره نشته هغوي به هيچرې بې حاجته زمونږ مدد ونۀ کړي. چنانچه څۀ وخت چې هغوي آغا نبي خان کلکتې ته رااستولو نو هم په دغه کال د ايران بادشاه نپولين ته هم يو خط ور واستولو او په هغې کښې ئې د هغۀ نه د روس برخلاف مدد وغوښتو. روس د کال 1800ء نه پس خپل يو جرنيل زيزيانوف چې د اصل نه جارجين وۀ د ايران د فتح کولو دپاره مقرر کړے وۀ. د فوځي قابليت او بيدار مغزى سره په دې افسر کښې يو داسې عادت او خوئ موجود وۀ چې هر طرف ته به هغۀ لشکر کشي وکړه نو د اولس د خلقو به ئې يوه لويه حصه بالکل تباه و برباد کړه. هغه سره د خپلو فوځونو د داغستان په علاقه کښې رانوتلو او هر څوک چې د هغۀ مخې له راغلل نو بې مرګه ئې پرې نښودل. دۀ د ګنجه قلعه په يوه چغه واخسته. او د هغې ټول سپاهيان ئې مړۀ کړل. او بيا ئې د تفلس نه د ګير چاپيره علاقو ګورنرانو ته خطونه وليکل چې کۀ چرې مو سمدستي د روس اطاعت قبول نۀ کړو نو ستا سو به هم د ګنجه د سپاهيانو په شان خبر واخلم او تر څو پورې چې ما د اراس د سيند تر غاړې پورې ټول ملک نۀ وي اخستے تر هغې به زۀ ساه وانخلم.

د کال 1804ء په سپرلي کښې عباس مرزا وليعهد ايران سره د خپل يو لوي لښکر ميدان جنګ ته د روسيانو مقابلې ته راووتلو او د ارمينيا په صدر مقام اريوان باندې ئې پيشقدمي وکړه. د دې صوبې ګورنر د ايران د اطاعت نه انکار وکړو او د روسي جرنيل نه ئې امداد وغوښتو. په جولائي 1804ء کښې دواړه فوځونه پرله پسې دوه ځله يو بل سره مخامخ شول ولې دواړه ځله عباس مرزا سخت شکست وخوړو. په دويم ځل خو د هغۀ فوځ دا شان مات شو چې هغه بالکل يواځې په ميدان کښې پاتې شو. عباس مرزا په يوه قلعه کښې پناه واخسته او د هغه ځاے نه ئې روسي جرنيل ته د صلح پيغام راواستولو. ولې زيزيانوف هغۀ ته جواب ورولېږلو چې ماته د زار د طرف نه دا حکم دے چې د اريوان نه عين د بحر خضر تر حده پورې د اراس سيند په غاړه غاړه ټول ملک باندې قبضه وکړم.

بادشاه ايران چې د دې شکستونو نه خبر شو نو پخپله د عباس مرزا امداد ته ورغلو. يو لوے فوځ ئې د ځان سره روان کړو ولې چې څۀ وخت ئې د روسي فوځ سره مقابله وشوه نو شکست ئې وخوړو. د متواتر شکستونو نه ايرانيان تنګ شول اخر هغوي فيصله وکړه چې د روسيانو نه د خرڅ خوراک ذريعه بندول پکار دي. چونکې ژمے نزدې وۀ روسي جرنيل خپل فوځونه واپس کړل او په مخکښې سپرلي کښې ئې بيا د راتلو نيت وکړو. په سپرلي کښې هغه د خپل تجويز مطابق راغلو او څۀ وخت چې هغه د بادکو د قلعې محاصره کوله نو قلعه بند

فوځ هغهٔ د صلح د خبرو اترو په بهانه ځان ته راوبللو او سمدستي ئ قتل کړو. شاه ایران د دې سفاک او خونخوار جرنیل په قتل باندې خو په اول اول کښې ډیر د خوشحالی اظهار وکړو ولې هغهٔ سره اوس دا فکر دامنګیر شو چې د روس بادشاه به ضرور د خپل جرنیل د قتل بدل زما نه اخلي. او ډیره ممکنه ده چې په دې بهانه هغه د ایران ټول ملک تاخت و تاراج کړي.

په ایران کښې د روس د منظم فوځونو د مقابلې کولو خو څهٔ طاقت نهٔ وهٔ نو د نورو یورپینو طاقتونو نه ئ د امداد اخستو سعي شروع کړه. د دې غرض دپاره هغهٔ یو خط نپولین ته چې دا وخت هغه د یورپ په هر قوم باندې متواتر فتوحات بیاموندي وو ولیکلو. هم په دغه ورځو کښې شاه ایران آغانبي خان هم کلکتې ته د حکومت هند سره د زړې عهدنامې د تازه کولو په غرض واستولو. لکه څهٔ رنګ چې مخکښې ذکر شوے دے کهٔ چرې نبي خان پخپل مقصد کښې کامیاب شوے وے او حکومت هند سره د هغوي د طبیعت مطابق فیصله شوې وے نو غالباً چې حکومت ایران به فرانس سره د نوې دوستۍ د قائمولو کوشش نهٔ وے کړے. ولې سر جارج بارلو آغا نبي خان بالکل ناکام خپل ملک ته واپس واستولو. لکه څنګه چې مونږه اګاهو ذکر کړے دے او ایران نپولین سره د خبرو سلسله جنباني شروع کړه. د کال 1805ء په ژمي کښې حکومت فرانس خپل سرکاري نمائنده کرنل رومیو تهران ته راواستولو. د دې نه وړومبے په کال 1800ء کښې ایران سره د حکومت هند عهدنامه شوې وه. نو په هغې کښې یو خاص شرط دا وهٔ چې حکومت ایران به په هیڅ وجه هم د فرانس خلق په خپل ملک کښې نهٔ پریږدي. بلکې کهٔ چرې د فرانس د قام څوک سرے د ایران په حدودو کښې بیاموندې شي نو هغه به د ایران حکام قتلوي. د دې نه پس هرڅومره کوششونه چې حکومت فرانس شاه ایران سره د دوستۍ قائمولو په غرض وکړل په هغې کښې فرانس ناکام شو. ولې اوس چې د انګریزانو د بې پروایی په سبب ایران پخپله فرانس له د راتلو دعوت ورکړو نو فرانس د دې نه سمدستي فائده وچته کړه او خپل نمائنده ئ د ایران دربار ته راواستولو. څهٔ لږه موده پس د نبي خان د سفارت د ناکامۍ خبر قطعي طور باندې په ایران کښې معلوم شو. او فرانس د کال 1806ء په سپرلي کښې یو بل سفیر موسیو جوبرټ تهران ته راولیږلو. د دِې سفیر شاه ایران بیشانه قدر وکړو. موسیو جوبرټ شاه ایران سره د هغهٔ په مصیبتونو کښې ډیره همدردي وکړه او د روس برخلاف ئ د فرانس د طرف نه د هر قسم امداد ورکولو وعدې وکړې.

ایران د خپل طرف نه دا اقرار وکړو چې زهٔ به د هندوستان په حمله کښې فرانس سره د هر قسم کومک کوم. بلکې د هغوي فوځونو له به پخپل ملک کښې لار هم ورکوم. او کهٔ چرې ضروري وه نو د ترکو په ملک باندې به هم د فرانسیسي فوځ دپاره د لارې پیدا

کولو په غرض حمله کوم. د دوستۍ دې تعلقاتو قائمولو کښې قريباً دوه کاله تير شول. د فرانس سفيرانو او نمائنده ګانو به هميش دا خبره شاه ايران ته مخکښې کوله چې کۀ چرې ايران له د روس برخلاف څوک امداد ورکولې شي نو هغه هم فرانس دے ځکه چې د فرانس او د روس سخته ورانه ده او صرف هغه طاقت د ايران حقيقي دوستي کولے شي چې د روس سره ئ دشمني وي.

غرض دا چې د دوؤ کالو په موده کښې د فرانس سفارت د جنرل ګارډن د مشرئ د لاندې په تهران کښې ښۀ مستحکم طور باندې قائم شوے وۀ او د ايران په هره صوبه کښې د هغوي انجنيئرانو، فوځي ماهرانو او د توپخانې افسرانو د ايران ډير تحفظات، فوځونه او توپخانې منظم کولې. او د هغوي افسرانو ته ئ د فنون حربيه تعليمونه او سپاهيانو ته ئ د ډرل او د قواعد سبقونه ورکول. او د هغوي بحري ماهرانو د خليج فارس د بوشهر د ګوجرون ملاحظې د محفوظ بندرګاهونو د جوړولو په غرض کولې. بلکې څۀ فرانسيسي افسرانو د سندهـ اميرانو سره هم د جارحانه او مدافعانه عهدنامې خبرې اترې کړې وے. غرض دا چې په هندوستان باندې د فرانسيسي حملې ټول تجاويز بالکل پاخۀ شوي وو چې په کال 1807ء جولائي کښې د روس د شهنشاه او د فرانس په منځکښې صلح وشوه. او لکه څنګه چې مونږ وړاندې د دې نه ليکلي دي نۀ صرف فرانس او ايران بلکې روس هم په هندوستان باندې د حملې کولو په تجويز کښې شامل شو. دا وخت حکومت برطانيه او حکومت هند د خوبه رابيدار شو. د فرانس او د روس د حملې ويره دا شان د هغوي په زړۀ کښې کښيناسته چې هغوي دواړو په يو ځل او په يو وخت خپل خپل نمائنده ګان د ايران په طرف واستول. په دې ورځو کښې د سر جارج بارلو په ځاے لارډ منټو ګورنر جنرل شوے وۀ. چنانچه لارډ منټو د فرانس د دې مجوزه حملې برخلاف دا تجويز وکړو چې د ايران نه عين تر ستلجه پورې هر څومره سلطنتونه چې پراتۀ دي هغه ټول دې د انګريزانو سره د عهدنامو په تار کښې وپيلے شي او قبل د دې نه چې د فرانس فوځونه د روس په امداد سره د ايران په حدودو کښې داخل شي دا ټول منځني طاقتونه دې د هغوي د مقابلې دپاره تيار کړې شي. دې خوا واقعاتو هم د انګريزانو ملګرتيا وکړه فرانسيسي سياستدانانو هميشه شاه ايران ته دا خبره کړې وه چې صرف د روس دشمن طاقت به د ايران ملګرتيا ته تياريږي پس څۀ وخت چې د روس او فرانس پخپلو کښې مصالحت وشو نو شاه ايران ته چې کومه طمع او اميدونه د نپولين د دوستۍ نه پيدا شوي وو په هغې باندې سړې اوبۀ توئ شوې. شاه ايران ته دا اميد وۀ چې د جارجيا شوکيدلے صوبه ماته د فرانس د دوستۍ په وجه راواپس کړې شي او د فرانسيسي فوځونو د دباؤ په وجه به روسي فوځونه زما د ملک نه واپس کړې شي ولې دا يو کار هم ونۀ

اوس حکومت هند د کال 1808ء په سپرلي کښې جنرل میلکم دویم ځل ایران ته په طور د سفیر ولیږو. هم په دغه ورځو کښې گورنمنټ برطانیه خپل یو سړے سرهارفورډ جونز ایران ته د دې دپاره ولیږلو چې د ایران او روس په منځکښې د صلح په سلسله کښې د شاه ایران وزیرانو سره خبرې اترې وکړي. چنانچه دا سړے هم په اپریل 1808ء کښې بمبئ ته راورسیدو. مگر د هغهٔ د رارسیدو نه وړومبے میلکم خلیج فارس ته روان شوے وهٔ او د میلکم په وینا باندې سرهارفورډ جونز ایران ته د تللو نه پاتې کړې شو. چونکې سرهارفورډ جونز په اصل کښې د کمپنۍ نوکر وهٔ ولې رااستولے حکومت برطانیه وهٔ. هغهٔ په بمبئ کښې د میلکم د سفارت تر نتیجې پورې پاتې شو. په لسمه مئ میلکم بوشهر ته ورسیدو او د هغه ځاے نه ئ کیپټن پیزلے دربار ایران ته په دې غرض ولیږلو چې تهٔ ټول اصلي واقعات معلوم کړه او شاه ایران ته د گورنمنټ هند د طرف نه په معتدل مگر زوردارو الفاظو کښې ووایه چې د فرانسیسیانو دوستي ستا د ملک د هستۍ دپاره خطرناکه ده. میلکم اگر چې د عقل، تدبر او په تجربه کښې لاثاني وهٔ مگر دا خوئ په هغهٔ کښې پروت وهٔ. چې د خلقو نه به خپل غرض او مقصد زیات تر په رعب داب سره ایستلو. هغه د بوشهر نه شاه ایران ته ولیکل چې تهٔ سمدستي د فرانس سفیر د تهران نه وباسه او تر څو پورې چې تا سره د فرانس سفارت خانه موجود وي نو زهٔ د بوشهر نه تهران ته نشم درتلے. شاه ایران د دې ناجائزې مطالبې د منلو نه فوراً انکار وکړو.

د میلکم د خط د لهجې نه صاف طور معلومیدل چې هغه د حکومت ایران نه خپل کار په ویره ورکولو وباسي. چنانچه شاه ایران کیپټن پیزلے تهران ته د راتلو نه منع کړو او د شیراز نه ئ ورانـدې پرې نښودو او ورته ئ حکم وکړو چې زما ماتحت افسرانو سره خبرې وکړه. جنرل میلکم او پیزلے په خپل سفارت کښې بالکل ناکام شول. میلکم حقیر او دلگیر د خپلې بې وقوفۍ او د مغرورانه انداز په وجه ناکام کلکتې ته واپس راغلو. او یو لوے رپورټ ئ د شاه ایران برخلاف کلکتې ته د خپلو رارسیدو نه وړومبے وړومبے رالیږلو. په دولسم د جولائي هغه د بوشهر نه راواپس شو او کیپټن پیزلے ئ په هغه ځاے کښې په طور د سفارت د مشر پریښودو. د دې سفارت د ناکامۍ قصور د جنرل میلکم خپلو دوستانو هم په هغهٔ ولگولو. څهٔ وخت چې لارډ منټو ته د جنرل میلکم د واپسۍ خبر وشو نو هغهٔ سرهارډ جونز ته خط ولیکلو او د خپل سفارت د ناکامۍ وجه ئ دا وښودله چې ایران د فرانس مکمل زیر اثر دے. او تر څو پورې چې فوځي کارروائي د ایران برخلاف ونکړې شي تر هغې پورې ایران انگریزانو سره دوستۍ ته مائل نهٔ دے. لارډ منټو دې تجویز سره فوراً اتفاق وکړو او سرهارډ جونز ته ئ دویم خط په دې غرض ولیږلو چې تهٔ ایران ته بالکل مهٔ ځه. مگر د دې خط د رسیدو نه وړومبے سرهارفورډ جونز د بمبئ نه روان شوے وهٔ. د سرهارفورډ جونز او د

جنرل میلکم په خپلو کښې ډیره سخته ورانه وه. میلکم لارډ منټو په دې خبره مجبور کړو چې سرهارفورډ جونز ته د ایران نه د واپسۍ خط ولیکي. میلکم دا نۀ غوښتل چې هرکله زۀ په ایران کښې ناکامیاب شوم نو چې هغه ځاے کښې جونز کامیاب شي. ولې جونز د دې خطونو د تعمیل نه انکار وکړو او وې وئیل چې زۀ دا وخت د ګورنمنټ برطانیه نمائنده یم نه چې د حکومت هند.

جونز په څوارلسم د اکتوبر بوشهر ته ورسیدو او د سخت کوشش نه پس هغه تهران ته د بادشاه په خدمت کښې د حاضریدو دپاره روان شو. ایران هم دا وخت لکه څۀ رنګ چې وړومبے ذکر شوے دے د فرانس د وعدو نه مایوسه شوے وۀ. د روس او د فرانس راضي نامې د شاه ایران په زړۀ کښې د شکونو یو بې انتها سلسله پیدا کړې وه. د هغۀ دا خیال پیدا شوے وۀ چې کۀ چرې روس او فرانس خپل شریک فوځونه یو ځل ایران ته په هندوستان د حملې کولو دپاره رانه ایستل نو ډیره ممکنه ده چې روس بیا د ایران د زمکې نه پښې وباسي او په ټول ملک باندې په زور قابض شي. دا شکوک د هغۀ په زړۀ کښې سرهارفورډ جونز نور هم مضبوط کړل. پس وړومبے د دې نه چې جونز تهران ته رسیدلے وے جنرل ګاډاني سفیر فرانس د تهران نه رخصت اخستے وۀ او خپل ملک ته روان شوے وۀ. د یو څو معمولي واقعاتو نه پس د ایران او د انګریزانو په منځکښې یوه ابتدائي عهدنامه وشوه. دې خوا د کلکتې ګورنر جنرل د جنرل میلکم د رپورټونو نه دومره متاثر شوے وۀ چې هغۀ د هغۀ د رائ مطابق د ایران په مقبوضه جزیره کهرک باندې د فوځي پیشقدمۍ تجویزونه جوړ کړل. جنرل میلکم د دې حملې او د قبضې ټول تجویزونه په لاره باندې په جهاز کښې جوړ کړي وو او هرکله چې هغه په دویشتم اګست ،کلکته کښې کوز شو نو په هغېباندې ئې د عمل کولو دپاره فوراً کارروائي شروع کړه. جنرل میلکم د لارډ منټو په دې یقین راوستے وۀ چې فرانسیسیان په هندوستان باندې قطعي راروان دي او ایران هغوي سره مکمل تړون کړے دے او هم له دې کبله د هغۀ سفارت په ایران کښې ناکامیاب شو. په ځاے د دې چې هغۀ خپله ناداني او ناعاقبت اندیشي تسلیم کړے وے، هغۀ خپلو افسرانو ته د خپلې ناکامیابۍ ټوله وجه دا وښودله چې ایران او فرانس په خپله کښې سره دومره دوستان شوي دي چې انګریزان بغیر د زور او د فوځي نمائش نه خپل ځان د ایران په خواو شا کښې نشي ځایولے.

لارډ منټو دوباره او سه باره جونز ته ولیکل چې کۀ چرې تۀ فوراً د ایران نه نۀ واپس کیږے نو مونږ به علانیه او ښکاره ستا د سرکاري حیثیت نه انکار وکړو. ولې سرهارفورډ جونز ښه په کلکه ګورنمنټ هند ته ولیکل چې کۀ چرې تاسو د ایران برخلاف څۀ قسم فوځي کارروائي بلا وجه دا وخت وکړه نو دا به زما د تباهۍ او د ملک د تباهۍ او بې عزتۍ سبب شي. ګورنمنټ هند د جنرل میلکم په ترغیب د جونز په بې عزتۍ او د هغۀ په رسوا کولو

کښې هیڅ کسر پرې نۀ ښودو او د هغۀ تول بلونه او هنډي ئ نامنظوره کړه. ولې جونز د خپل کار نه وا نۀ وړیدو او بدستور ئ دا وئیل چې د گورنمنټ هیڅ اختیار نشته چې ما دَ ایران نه واپس راوبلي.

دې خوا لارډ منټو او میلکم هم په خپل ضد ولاړ وو او په ایران باندې ئ بغیر د اعلان جنګ نه د حملې کولو فیصله کړې وه. چنانچه میلکم د اوبو په لار د کلکتې نه بمبی ته روان شو. په بمبی کښې دوه زره مسلح فوځ د هغۀ د کمان لاندې ایران ته د روانیدو دپاره تیار ناست وۀ. میلکم دا غوښتل چې د کهرک په جزیره باندې د قبضې کولو په ذریعه د ایران په سلطنت باندې رعب واچوؤ. هغه په اول دسمبر بمبی ته راورسیدو او تر اتلسمې جنوری پورې ئ مکمله تیاري وکړه. دا فوځ په دې تاریخ باندې روانیدو ته تیار وۀ چې د جونز نه خبر راورسیدو چې زۀ به عنقریب د ایران سره د فرانس په خلاف د دوستی عهدوپیمان کولو کښې کامیاب شم. باوجود د دې میلکم ایران ته د تلو دپاره اراده پرې نۀ ښوده. په دې ورځو کښې میلکم په یو خط کښې دا رنګ لیکلي دي :

" I have private accounts from Bushire, which state that Sir Harford Jones is, or pretends to be, completely confident of a success which every child with him sees is unattainable through the means he uses. His friends now believe he will go on inspite of any orders he may receive from the Governor General. I mean to go on too (there is, indeed nothing in these dispatches that can stop me for a moment), so we shall have a fine mess (as the sailers say) in the Gulf."

ترجمه : ماته د بوشهر نه یو نجي تحریر راغلے دے چې د هغې نه معلومیږي چې د سرهارفورډ جونز یا خو واقعي دا خیال دے او لا هسې بهانه کوي چې زۀ به یقیناً په خپل مقصد کښې کامیاب شم حالانکې یو بچي ته هم دا معلومیدې شي چې کومې ذریعې هغه استعمالول غواړي په هغې باندې د هغۀ کامیابي ناممکنه ده. د هغۀ د دوستانو دا یقین دے چې باوجود د گورنر جنرل د احکام نه به هغه خپل کار بدستور جاري ساتي. ولې ما هم د خپل کار جاري ساتلو قصد کړے دے. ( په حقیقت کښې خو په دې سرکاري مراسله جات کښې دا شان هیڅ څیز نشته چې ما د یوې لحظې دپاره هم د خپل کار نه بندوي) نو (لکه څنګه چې مانړګان خبره کوي) په خلیج کښې به ښۀ کیچړے جوړ شي.

اګر چې ګورنر جنرل د میلکم د فوځي پیشقدمی حکم منسوخ کړے وۀ ولې میلکم ئ ایران ته په حیثیت د ګورنمنټ هند د سفیر ولیږلو. غرض دا چې په دولسم مارچ 1809ء کښې د جونز او د مرزا شفیع وزیر اعظم ایران په منځکښې ابتدائي عهدنامه وشوه. د دې عهدنامې د شرطونو مطابق ایران دا اقرار کړے وۀ چې مونږ به هیڅ یو یورپیز طاقت له په هندوستان باندې د حملې کولو دپاره د ایران په ملک کښې لار نۀ ورکوؤ. او کۀ چرې افغانستان لا بل حکومت په هندوستان حمله وکړه نو ایران به د هندوستان د حفاظت دپاره

فوځونه لیږي. انګریزانو د خپل طرف نه دا اقرار وکړو چې کۀ چرې یو یورپین طاقت په ایران فوځ کشي وکړه نو حکومت برطانیه به لا ایران ته فوځي مدد ورکوي او لا به د هغې په ځاے مالي امداد دومره سامان جنګ مثلاً توپې، ټوپکونه او افسران چې څومره د فریقینو دپاره سودمند وي ورکوي. دا عهدنامه حکومت برطانیه په انګلستان کښې منظوره کړه. او جونز شاه ایران سره د سفارت په عهدې باندې مستقل طور مقرر کړے شو.

حکومت هند بالکل د خپلې مرضئ برخلاف د جونز د عهدنامې په منظورولو مجبور شو ولې د هغوي د زړۀ نه تر اخره دا بغض ونۀ وتلو. چې د ایران حکومت د حکومت هند نمائنده سره ولې عهدنامه وکړه. هغوي خفیه طور دا اراده وکړه چې په یوه مناسب موقع باندې به مونږ ضرور د ګورنمټ هند رعب په ایران باندې قائموؤ. میلکم حکومت هند باوجود د جونز د موجودګئ نه ایران ته په طور د سفیر ولیږلو او خپل ځان له ئې مستقل تعلقات حکومت ایران سره جوړ کړل. هر کله چې میلکم او جونز ایران ته په سفارت ولیږلې شول نو د رنجیت سنګهه دربار ته حکومت هند چارلس متکاف د دوستئ عهدو پیمان د جوړولو دپاره ولیږلو. او ایلفنسټن ئې د شاه شجاع دربار ته او کیپټن سټن ئې امیران سندهه سره هم د دې غرض دپاره سفیران ولیږل. دې ټولو افسرانو د حکومت هند د طرف نه دې حکومتونو سره د دوستئ عهدنامې وکړې. په دوئ کښې هر یو حکومت کم و بیش هم دا اقرار وکړو چې مونږ به هیڅ یورپین طاقت په هندوستان باندې حملې ته نۀ پریږدو.

د دې سفارت د راتلو په زمانه کښې وزیر اعظم اکرم خان وۀ چې یو لوے درانے سردار وۀ او ورسره دویم وزیر ابوالحسن خان وۀ چې د اصل نه ایرانے وۀ. د دې دواړو وزیرانو په ذریعه باندې شاه شجاع د ایلفنسټن سفارت سره دا معاهده وکړه چې کۀ چرې څۀ بیروني طاقت د افغانستان په لار باندې په هندوستان فوځ کشي وکړه نو انګریزان به خپل فوځونه د حمله کونکي برخلاف افغانستان ته راولي. د بیروني خطرې نه علاوه فیرنګیانو سره دا فکر وۀ چې شاه افغانستان همیش دپاره د احمد شاه د وختو نه د هندوستان د هغې ټولو مسلمانانو بادشاهانو او حاکمانو چې د چا انګریزانو سره دشمني او مقابله وه ملجا او ماوا ګڼلے شي. چنانچه ټیپو سلطان، وزیر علي او نورو ډیرو مسلمانانو بادشاهانو او مرهټۀ وقتاً فوقتاً د پښتنو بادشاهانو نه مدد او اعانت غوښتے وۀ. او دا به هم د دې کتاب لوستونکو ته یاد وي چې زمان شاه څو څو ځله په هندوستان باندې د حملې کولو په نیت عین تر لاهوره پورې لاړو او کۀ چرې د پښتنو په خپل کور کښې ورانے نۀ وے او د بادشاه په سردارانو کښې یو تر بله کینه، حسد، بغض او دشمنی نۀ وے او هر یو د خپل ذاتي عزت د زیاتولو او د خپل ځان د فائدې لټولو کوشش نۀ کولے نو په دې زمانه کښې هم د پښتنو یو قوم دا شان وۀ چې هغوي د هندوستان قومونو له د انګریزي اقتدار برخلاف امداد ورکولې شو. هم په دغه خیال باندې

• هلکر پخپله چې د مرهټو بادشاه وُ یو سفارت د کابل دربار ته استولے وُ. ایلفنسټن ماونسټورټ چې په 1809ء کښې د شاه شجاع دربار ته په طور د انګریزي سفیر راغلے وُ هغه پخپل کتاب کښې د زمان شاه سره د خپل ملاقات حال دا شان لیکي :

" هر کله چې مونږ د پیښور نه په واپسی کښې راولپنډۍ ته راورسیدو نو د شاه شجاع د حرم زنانه هم هغه ځاے ته شاه زمان سره راورسیدلې. چونکې په یوه زمانه کښې د شاه زمان شهرت او نوم د هندوستان نه تر ایران پورې خور شوے وُ له دې کبله زمونږ ډیر شوق وُ چې هغهٔ سره ملاقات وکړو. په لسم د جولائي مونږ د هغهٔ د کتلو دپاره لاړو. څهٔ وخت چې مونږ ورسیدو نو هغه په یوه خیمه کښې په کټ ناست وُ په خیمه کښې قالینونه او لمسي غوړیدلي وو. مونږ هغهٔ ته مخامخ پورې ولاړ وو چې تر کومه پورې هغهٔ مونږ ته د ناستې نهٔ وو وئیلي. د هغهٔ جامې بالکل ساده وې په سر ئې د تور شال پګړۍ وه او یوه سپینه چغه چې په هغې د وریښمو او د تیلې ګلکاري شوي وه هغهٔ اغوستې وه. ولې د هغهٔ شکل او جُثه بې حده ډیره شاهانه وه په عمر کښې هغه تخمیناً د څلویښتو کالو وُ.

څهٔ وخت چې هغه مونږ ولیدو نو د هغهٔ مخ او نور بدن ډیر ښکلے وُ د هغهٔ اواز او عادات بالکل د شاه شجاع په شان وو ولې په قدوقامت کښې هغه د شاه شجاع نه زیات دنګ وُ او د مخ وړدوالے او کرهٔ وړهٔ ئ د شاه شجاع نه ډیر ښائسته وو. ږیره ئ هم د هغهٔ نه ښائسته وه. د هغهٔ شکل د ړندو خلقو په شان نهٔ ښکاریدو او اګر چې د هغهٔ سترګې زخم خوړلے معلومیدې مګر په هغوي کښې دومره توروالے پاتې وُ چې د هغهٔ د مخ او شکل نور پرې وران شوے وُ. هر چا سره چې به هغهٔ خبرې کولې نو همیش به ئ ورته سترګې رااړولې. زمونږ د ملاقات په وخت کښې هغه لږ غمژن او خفه معلومیدو. څهٔ وخت چې مونږ کښیناستو نو د هغې نه پس یوه وړده خاموشي طاري شوه اخر شاه زمان د شاه شجاع د جنګ او د هغهٔ د شکست متعلق خبرې راواخستې او مونږ ته ئ ووئیل چې هم د دې تکلیفونو په باعث هغهٔ ستاسو ښهٔ خاطر ونکړې شو. بیا هغهٔ د افغنستان په واقعاتو باندې بحث شروع کړو او وې وئیل چې امید دے چې واقعات به زمونږ طرف ته شي.

"The intensive wars, which rent and convulsed the Afghan Empire, was a source of acknowledged security to the British Power in the East."

ترجمه : کوم اندروني خانه جنګو چې د پښتنو حکومت تس نس کړے هم دغه بې اتفاقی په مشرق کښې د فیرنګیانو د حکومت دپاره د سلامتی ذریعه وے. (سر جان کے صفحه ۳۶)

د دې خطرې نه د ځان ساتلو دپاره هم ایلفنسټن راغلے وُ چنانچه شاه شجاع په دې عهدنامه کښې یو اقرار دا هم وکړو چې زهٔ به چرې د انګریزي حکومت برخلاف نهٔ بلوسیږم. واقعات ټول د خوش قسمتی نه د انګریزانو په طرف شول. د نپولین او شهنشاه روس په منځکښې ناراضګي راغله او انګریزانو دومره روپی په تهران کښې وویشلې چې د نپولین

تجاویز بالکل ناکامیاب شول. او هندوستان د بیروني خطرې نه بالکل محفوظ شو. دې خوا په پښتنو کښې د خانه جنګو دختمیدو هیڅ امید په نظر نۀ راتلو. د بادشاه برخلاف بادشاه، د سردار خلاف سردار، د قبیلې برخلاف قبیله یو تربله امبړ چمبړ وه. د هغوي په ملک کښې دومره بدامني وه چې د خواوشا علاقو به هر وخت بغاوتونه کول او یو منټ به ئ هم شاهي فوځونه ارام کولو ته نۀ پریښودل. شاه شجاع اوس خپل ځان ډیر مستحکم ګڼلو، مختارالدوله چې د هغۀ د دربار په زبردستو وزیرانو کښې وۀ د هغۀ بغاوت هغۀ په خپل لاس فرو کړو. په قندهار باندې هغۀ بیا دوباره قبضه وکړه او په هر طرف هغۀ د خپلې دبدبې او شان و شوکت سکه قائمه کړه. څۀ وخت چې هغه پیښور ته راورسیدو نو هغۀ سمدستي اکرم خان د خپل ټول فوځ سره کشمیر ته د عطا محمد خان برخلاف چې د مختار الدوله زوے وۀ واستولو. د اکرم خان د تلو نه لږه موده پس هغۀ له خبر راغے چې قندهار بیا شاه محمود او فتح خان واخستو. په دې باندې بادشاه ډیر کبیده خاطر شو مګر د هغۀ دا امید وۀ چې څۀ وخت اکرم خان د کشمیر د فتح کولو نه واپس راشي نو بیا به د قندهار برخلاف فوځ کشي وکړم مګر په درویشتم د اپریل کال 1809ء کښې خبر راغے چې د اکرم خان فوځ هم شکست وخوړو او ټول لښکر ئ بالکل تباه شو. په دې اثنا کښې شاه محمود د قندهار نه په کابل باندې ورغے او په ډیره اسانتیا سره ئ په هغې هم قبضه وکړه.

شاه محمود بیا خپل فوځونه پیښور ته واستول او د ایلفنسټن مشن لا هغسې په پیښور کښې وۀ چې شاه شجاع د شاه محمود د مقابلې دپاره تیاری شروع کړې. په دې منځکښې اکرم خان راورسیدو او د افریدو او د غلجو څۀ فوځونه چې کشمیر نه مات ګوډ رارسیدلي وو هغه ئ ټول راجمع کړل. اکرم خان اګر چې ذاتي طور باندې ډیر بهادر او په دوستۍ کښې ډیر کلک وۀ د لوظ ډیر پوخ او په انصاف کښې ډیر بې رو رعایت وۀ مګر حریص وۀ او د مال دولت ډیر شوقین وۀ. د دې نه علاوه په خوئ کښې ډیر متکبر وۀ او د خلقو رسائي به ورته نشوه کیدے. په دې زمانه کښې د بادشاه لاس تنګ وۀ نو کۀ چرې اکرم خان خپل دولت خرڅ کړے وے نو یقیناً چې شاه شجاع بۀ د یو لوې فوځ په راجمع کولو کښې کامیاب شوے وۀ مګر هغۀ شومتوب وکړو او بادشاه ته د لښکر په فراهم کولو کښې ډیر تکلیف وشو.

اخر د ډیر جدوجهد نه پس بادشاه د جون په میاشت کښې کابل ته روان شو. اخوا ته شاه محمود او فتح خان هم په پیښور باندې راروان وو. د شاه شجاع لښکر د ګندمک په خوا کښې د نیملې په مقام باندې پروت وۀ او یو ښۀ مضبوط ځاے ئ نیولے وۀ. محمود مخامخ نه په هغۀ حمله وکړه او فتح خان پرې د اړخ د طرف نه راپریوتو. شاه شجاع شکست وخوړو مګر اکرم خان د یو څو سرو سره د فتح خان په لښکر باوجود د شکست نه بیا حمله

وکړه او په جنګ کښې قتل شو. شاه شجاع بیا د افریدو په غرونو کښې پناه واخسته او شاه محمود بیا یو ځل د کابل په تخت باندې کښېناستو. شاه شجاع په غرونو غرونو کښې د افغانستان جنوبي حصې ته وتښتیدو او یو ځل بیا ئې په کال 1810ء کښې په قندهار حمله وکړه او وائې خستو مګر دا قبضه هغهٔ ځان سره ټینګه نهٔ کړې شوه. او ډیر زر ئې بیا شکست وخوړو. او په تیښته کښې د اټک ګورنر ګرفتار کړو او کشمیر ته ئې بندیوان ولیږلو. شاه شجاع سره په خپل مال او دولت کښې اوس یو کوه نور نومے الماس پاتې وهٔ او د هغې د اخستو دپاره هغهٔ له هر چا قسم قسم تکلیفونه ورکول.

په کال 1813ء کښې هغهٔ ته اجازت وشو چې په لاهور کښې د خپل کور خلقو سره شامل شي د شاه شجاع د پیښور نه د تښتیدو په وخت کښې شاه زمان د هغهٔ د کور خلقو سره لاهور ته راغلے وهٔ. او د لاهور نه لدهیانې ته تللے وهٔ هغلته انګریزانو سره وسیدو. شاه شجاع تر 1815ء پورې رنجیت سنګهـ په لاهور کښې نظر بند ساتلے وهٔ. هغه ځاے نه اخر هغه وتښتیدو او یوه ناکامه فوځ کشي ئې په کشمیر وکړه. هغه ځاے نه بیا هغه لدهیانې ته راوتښتیدو. د دې واقعاتو ذکر به مخکښې په تفصیل سره راشي. ایلفنسټن د بادشاه شاه شجاع سره د ملاقات دلچسپه قصه پخپل کتاب د افغانستان د حکومت تاریخ کښې کړې ده او د دربار د امیرانو وزیرانو د اخلاقو یوه ښه نقشه ئې په هغې کښې راښکلې ده. مونږ دلته صرف د شاه شجاع متعلق د هغهٔ د کتاب نه نقل کوؤ هغه وائي " چې څهٔ وخت مونږ بادشاه ته په دربار کښې پیش شو نو هغه وخت بادشاه په محراب کښې په یو سنهري تخت باندې ناست وهٔ د هغهٔ شکل د جاه و جلال نه ډک وهٔ او د بادشاهانو په شان د هغهٔ تاج او لباس د جواهراتو نه شعلې وهلې خواجه سرا ګان د هغهٔ د تخت نه چارچاپیره ولاړ وو او په دربار کښې هر خوا ته خاموشي طاري وه. او د چا مجال نهٔ وهٔ چې لاس پښه ئې خوځولے وے. څهٔ وخت چې مونږ بادشاه ته رامخامخ شو نو مونږ ټولو یعنې د سفارت ممبرانو خپلې ټوپۍ کوزې کړې او د ادب په نیت باندې ټیټ شو بیا مونږ لاسونه وچت کړل لکه څهٔ رنګ چې خلق د خداے نه دعا غواړي او بادشاه ته مو دعا وکړه. او پس د هغې نه مونږ یوې خیمې ته ورورساندې شو په هغه ځاے کښې چاؤس باشي زمونږ نومونه بغیر د څهٔ خطاب یا نور څهٔ د اداب د الفاظو نه واخستل او په اخر کښې ئې ووئیل چې بلا دې واخلم د یورپ نه د حضور والا په خدمت کښې په حیثیت د سفیرانو حاضر شوي دي. بادشاه په ډیر وچت او صاف اواز سره هر کله راشه ووئیل. په دې باندې مونږ بیا هغهٔ ته دعا وکړه او په دریم ځل مونږ بیا دعا وکړه. بادشاه حکم وکړو چې دوئ له دې د خلعت جامې ورکړې شي. د دې نه پس د دربار یو افسر په ترکی کښې څهٔ حکم وکړو او د سپاهیانو قطارونه چې دواړو غاړو ته ولاړ وو په یو قطار کښې ودریدل او د دربار نه ووتل. دغه شان دوه ځله نور حکم وشو او نور فوځ هم د

دربار نه ووتلو. په څلورم حکم باندې خانان ماسوا د يو څو تنو نه ووتل. هغوي ته بادشاه د راوړاندې کيدو حکم وکړو. په دې اثنا کښې بادشاه په ډير عظمت سره د خپل تخت نه راوچت شو او په پوړو راکوز شو په دوؤ خواجه سرا گانو ئ لاسونه واچول او زمونږ د نظر نه غائب شو. کومو خانانو ته چې د وړاندې کيدو حکم شوے وؤ هغوي په دو دو وړاندې شو او مونږ يو اندرپايې ته ورننزدې شو په دې اندرپايې باندې اعلیٰ اعلیٰ قالينونه پراتۀ وو..... شاه کابل ډير ښکلے سړے وؤ او په عمر کښې قريباً د ديرشو کالو وؤ او درنه ته ږه ږيره ئ وه د وضع قطع نه ډير دروند او خوش مزاج ښکاريدو. اواز ئ صاف او خبرې ئ بالکل شاهانه وے."

# وزیر فتح خان

په وروستني باب کښې د شاه شجاع اخري ځل د پیښور نه د تښتیدو ذکر شوے دے. سر الیګزنډر برنس چې په کال 1839 کښې هغهٔ شاه شجاع سره بیا دوباره د کابل د تخت د اخستو دپاره په ملګرتیا کښې تلے وهٔ هغهٔ د شاه شجاع څهٔ حالت د نیمله د شکست نه پس پخپل کتاب کښې درج کړے دے. دا حالات هغهٔ د شاه شجاع د یو کتاب نه چې هغهٔ د خپلو مصیبتونو په بابت لیکلے وهٔ اخستي دي. په خپل کتاب کښې سر الیګزنډر برنس وائي چې څهٔ وخت شاه شجاع الملک د نیمله د شکست نه پس په خپل ملک کښې شړونکے یو خوا بل خوا تر ډیرې مودې پورې ګرځیدو نو هغهٔ خپل واقعات په یو ورکوټي کتاب کښې په خپل لاس ولیکل. دا واقعات ډیر دلچسپ دي.

" د قندهار د شکست نه پس هغه عطا محمد خان چې د هغهٔ د سابق وزیر زوے وهٔ ګرفتار کړو او ډیر د بې عزتۍ سلوک ئې ورسره وکړو. څهٔ مودې پورې شاه شجاع د اټک په قلعه کښې ئې بند وساتلو. ډیر ځلې هغهٔ د شاه شجاع سترګو ته سیخونه ونیول او یو ځل خو د هغهٔ محافظ د هغهٔ متې وتړلې او د سیند منځ ته ئې بوتلو او ورته ئې ووئیل چې کهٔ د کوه نور لعل فوراً مونږ ته نهٔ حواله کوے نو سیند ته دې اچوم. په دې اثنا کښې عطا محمد خان کشمیر ته روان شو او بادشاه ئې ځان سره بندیوان راروان کړو. هر کله چې کشمیر فتح خان واخستو نو فتح خان هغه ازاد کړو او هغه د خپل کور خلقو سره لاهور کښې یو ځائے شو. د هغهٔ ملکه بي بي وفا بیګم چې د هغهٔ په حرم کښې د ټولو نه زیاته با اثره بي بي وه. هغې شاه شجاع ته ډیر ځلې وئیلي وو چې تهٔ ځان د رنجیت سنګهه حفاظت ته مهٔ سپاره. مګر هغهٔ د هغې وانهٔ وریدل. او په اخر کښې ئې د هغې نصیحت پسې ډیر ارمان وکړو. دا بي بي ډیره زړوره او د استقلال میرمن وه. او د هغې رائ او مشوره به همیشه د خپل خاوند په تنګسیا او په فراخۍ دواړو کښې ډیره سودمنه وه. په لاهور کښې چې څهٔ وخت هغه د سکهانو په لاس کښې وه او د خاوند نه جدا وه نو هغې خپل او د خپل خاوند ابرو او عزت په ډیرې بهادرۍ سره د سکهانو د لاسه محفوظ ساتلے وهٔ. رنجیت سنګهه په هغې باندې دکوه نور د حواله کولو دپاره ډیر زیات زور اچولے وهٔ او ورته ئې سوال جواب استولے وهٔ چې کهٔ په رضا ئې نهٔ راکوے نو په زور به ئې درنه واخلم. هغهٔ دا هم دې بي بي ته وئیلي وو چې زهٔ ستا لونه په خپل حرم کښې داخلوم. ملکې هغه سړے چې چا دا خبر راوړے وهٔ د خپلو نوکرانو په لاس ښهٔ وټکولو او مهاراجه ته ئې خبر ور واستولو چې کهٔ چرې تا بیا زمانه داسې د بې عزتۍ او ناجائز مطالبات وکړل نو زهٔ به کوه نور په ګټه چور چور کړم او وړومبے به ئې خپلو لوښو او بیا

خپلو خدمتگارو له ورکړم او پس د هغې نه به ئ بیا زۀ خپله وخورم. په اخر کښې ئ ورته ولیکل چې د دې ټولو خون دې خدائے پاک ستا په غاړه کړي.

د شاه شجاع دا بي بي په اخر کښې د لاهور نه د هندوانو په جامه کښې سره د خپلو لوڼو وتښتیده او د خپل خاوند د خلاصي دپاره ئ تجویزونه شروع کړل. بادشاه چې څۀ وخت د رنجیت سنګهـ لاس ته راغے نو هغۀ د کوه نور دپاره فوراً هغه په جیلخانه کښې واچولو. او د قسم قسم بي عزتۍ او لوږې تندې ئ پرې تیرې کړې. اخر دا چې کوه نور هغۀ رنجیت سنګهـ ته حواله کړو. د بادشاه بي بي د لاهور نه لدهیانې ته د انګریزانو حکومت ته راوتښتیده او څۀ وخت چې هغه شاه شجاع سره د سکهانو د شرمناک سلوک نه خبر شوه. نو هغې د خپل څښتن د خلاصي دپاره انتهائي جدوجهد شروع کړو. هغې په ټوله لار باندې شاه شجاع ته اسونه ودرول او شاه شجاع هم د لاهور د ښار نه د تښتیدو کوشش شروع کړو. په کوم کور کښې چې هغه په لاهور کښې وسیدلو د هغې نه ګیر چاپیره ټول کورونه ئ هم په کرایه واخستل. پس د هغې نه هغۀ په اووو دیوالونو کښې سوري وکړل او ځان ئ یوې کوځې ته وویستو. شاه شجاع بیا شومه دم د پنجابیانو په جامه کښې د ښار د فصیل نه راووتلو او چونکې د ښار دروازې بندي وے نو د یوې اندرپایې په ذریعه په دیوال راواوړیدو او سره د دوه دریو نوکرانو د کشتوار غرونو ته وتښتیدو. د دې ځائے نه هغۀ بیا یو ځل شاهي جنډه وچته کړه او په کشمير باندې ئ د حملې کولو تجویز وکړو. په دې حمله کښې د کشتوار راجه هغۀ سره امداد وکړو او د کشمیر ګورنر هم د هغۀ په راتلو سره سرحدي علاقه خالي کړه. مګر مخکښې د ژمي موسم راغے او ټولې لارې په واورو باندې بندې شوې. دے د شاه شجاع امیدونه قطع کړل. او په ورانو ویجاړو لارو باندې بادشاه سبهتو نومے ځائے ته چې د انګریزانو علاقه وه راورسیدو. د هغې ځائے نه لدهیانې ته راغے او د خپل کور خلقو سره شامل شو. شاه شجاع لدهیانې ته د کال 1816ء د ستمبر په میاشت کښې راورسیدو.

شاه محمود په حقیقت کښې د کابل د تاج و تخت دواړه ځل صرف د فتح خان په زور، قابلیت او اثر باندې اخستے وۀ. باوجود د دې چې شاه محمود د خپلې عیاشۍ، سستۍ او بیکارۍ په وجه یو ځل د بادشاهۍ نه محروم شوے وۀ مګر څۀ وخت چې هغۀ بیا یو ځل د تاج و تخت مالک شو نو هغۀ خپل عادتونه بیا راواخستل او شب و روز په عیش و عشرت کښې او بد عملو کښې مشغول شو. د هغۀ د بادشاهۍ اخستو غرض صرف خپل ځان دپاره د خوشحالۍ سامان پیدا کول وو. نۀ د هغۀ د حکومت امورو سره څۀ دلچسپي وه او نۀ ئ د رعایا بهبودۍ سره څۀ کار وۀ پښتنو هغه په ښۀ شان سره پیژندلے وۀ. مګر چونکې فتح خان بیشانه هردلعزیز او نامتو سردار وۀ او د بارکزو غوندې زبردستې قبیلې مشر وۀ. په دې وجه د شاه محمود حکومت چارو ناچار د فتح خان د خاطره منظور او قبول کړو. شاه محمود بالکل

دا نۀ غوښتل چې زۀ د حکومت د مشکلاتو د محنتونو نه خبر شم. پس د سلطنت ټول امور هغۀ هم سردار فتح خان ته حواله کړل او هغه ئ خپل وزیر اعظم مقرر کړ. د افغانستان د سلطنت د کل سیاه او سفید اختیارات هغۀ د فتح خان په لاس کښې ورکړل او په ملک کښې چې کومه بد امني او بدنظمي د مسلسل خانه جنګو په وجه پیدا شوې وه د هغې د فرو کولو دپاره ئ هغه د فوځونو هم کل اختیاره کړو.

هر کله چې شاه محمود د حکومت ټول بار د خپله سره لرې کړو او د فتح خان په ذمه ئ واچول نو بیا هغه په شرابو کبابو کښې مشغول شو. سپاهیانه زندګي هغۀ بالکل پرېښوده او په خپلو خویونو کښې هغۀ بالکل ښځونک شو. سردار فتح خان د هغۀ د اعتبار نه کوم چې بادشاه په هغۀ کړے وۀ د هیڅ قسم ناجائزه فائده وانۀ خسته. درحقیقت سردار فتح خان یو زبردست قوم پرست پښتون وۀ د هغۀ په زړۀ کښې د وطن محبت او د قام مینه وه. هغۀ شاه زمان او شاه شجاع الملک صرف په دې وجه د کابل په تخت نۀ غوښتل چې شاه زمان د هغۀ پلار بلا وجه قتل کړۓ وۀ. حالانکې د هغۀ د تخت نشیني اصلي باعث هم د هغۀ دغه پلار وۀ. د احمد شاه د زمانې نه پس کۀ چرې چا د پښتنو د یوځاے کولو او په هغوي کښې د اصلي پښتونولۍ او د قامولۍ د روح پیدا کولو کوشش کړے دے نو هغه سردار فتح خان وۀ. سردار فتح خان کۀ چرې په دې زمانه کښې غوښتلې نو بلا تکلیفه هغۀ ځان بادشاه کولے شو مګر هغۀ د سدوزو د خاندان حق تلفي نۀ کوله. او همیش به ئ هم د شاهي خاندان سړے د کابل د تخت دپاره پیش کولو. سردار فتح خان ته دا معلومه وه چې د پښتنو قام د خپلو بې اتفاقو او خانه جنګو په وجه بالکل تباه شوے دے. مفتوحه ممالک یو په یو د هغوي د لاسه هم د دي خانه جنګو په وجه وتلي دي. په دې وجه د هغۀ وړومبے کوشش دا وۀ چې په پښتون قام کښې بیا یو اتفاق او یوه عزیزولي پیدا کړم. او د کومو سردارانو چې لا د بادشاه نه څۀ رنجشونه دي او لا ئ پخپلو کښې سره دشمنۍ او بغضونه دي هغه ټول لرې کړم او په یو مشترک نظام عمل باندې زۀ هغوي راټول کړم.

سردار فتح خان دا کار په داسې اخلاص سره شروع کړو او دا شان شپه او ورځ ئ په دې کښې ځان مشغول کړو چې ټول ملک کښې د هغۀ نوم مشهور شو او ټولو ته د احمد شاه د زمانې د پښتنو جاه و جلال او شان شوکت راياد شو. په هر یو کار کښې به هغۀ اصل غرض د پښتنو د قام عزت زیاتول وو او د پښتنو ورکه شوې دبدبه او جاه و جلال قائمول وو. باوجود د دې نه د هغۀ نه د هیڅ شي تپوس د بادشاه د طرف نه نۀ وۀ. مګر د هغۀ عدل او انصاف دا قسم وۀ چې هیچا ته چرې د هغۀ برخلاف د شکایت موقع نۀ وه. هغۀ ته دا معلومه وه چې د ملک ترقي اندروني او بیروني امن و امان باندې کیږي. او د سرحدي علاقو په استحکام باندې د حکومت اقتدار زیاتیږي پس هر قسم اندروني او بیروني جنګونه چې

سردار فتح خان کړي وو هغه ئ هم د دې غرض د حاصلولو دپاره کړي وو. د هغۀ مطلب د حکومت منتشره شيرازه بيا راجمع کول وو او په دې کښې هغۀ د هيڅا لحاظ او رعايت نۀ کولو. هغۀ د اندروني نظام د قائمولو دپاره بيا د نوي سره ټول قوانين منضبط کړل. او د فقير نه تر اميره پورې ئ هر يو سړے په دې مجبور کړو چې قانون ته سر ښکته کړي. هم دغه شان هغۀ په محکمه ماليات کښې د هر قسم اصلاحات وکړل او د قانون کوم قدر او عزت چې د خلقو د زړۀ نه پاڅيدلے وۀ هغه ئ بيا سر دوباره د خلقو په زړونو کښې پيدا کړو. عجيبه خبره دا وه چې په سردار فتح خان کښې انتظامي او جنګي دواړه قسمه قابليتونه موجود وو. مګر افسوس دا دے چې په ټول حکومت کښې صرف هم دغه يو سړے وۀ چې د قوم محبت او د ملک مينه د هغۀ په زړۀ کښې موجوده وه. هغۀ د مختلفو صوبو په حکومتونو باندې صرف هغه سړي مقررول غوښتل چې په چا باندې د هغۀ مکمل اعتماد وۀ ځکه چې په ملک کښې به اکثر فسادونه د خپلو خودغرضو او د بد ديانتو په وجه هم دغې حاکمانو پيدا کول. او څۀ وخت چې به حکومت وخت هغوي د دست درازو او بدديانتۍ نه بندول غوښتل نو بغاوت به ئ وکړو پس هغۀ احکام جاري کړل چې په ملک کښې دې هيڅ قسم بد انتظامي بې انصافي او زور زياتے ونشي او د دې غرض د پوره کولو دپاره ئ د هرې صوبې په حکومت باندې خپل کشران ورونه مقرر کړل. د صوبې په حکومتونو باندې د هغۀ خپل ورونه مقررول يو امر مجبوري وۀ. د هغۀ هرګز دا خواهش نۀ وۀ چې ګني په ټول ملک کښې دې زۀ د خپل خاندان تسلط قائم کړم. ليکن چونکې د شاه محمود د حکومت بالکل ابتدا وه او د امن د قائميدو ډيره لږه موده شوې وه د دې دپاره هغۀ دا غوښتل چې کم از کم لرې لرې صوبې دې زما د اعتباري سړو په لاس کښې وي. چې د هغوي د غم نه زۀ بالکل بې فکره يم. لکه څۀ رنګه چې وړومبے ذکر شوے دے چې د شاه محمود په دربار کښې هم يو فتح خان داسې سړے وۀ چې هغۀ ته د سلطنت حفاظت او د پښتنو نوم د هر څۀ نه زياتې خوږۀ وو. د دربار نور اميران او وزيران د هغۀ په دې دومره وسيع اختياراتو باندې ضرور خفه وو او هر وخت چې هغوي ته موقع حاصليده نو د شاه محمود غوږونه به ئ د هغۀ برخلاف ډکول. په دې کسانو کښې د شاه محمود زوے کامران د ټولو نه زيات د فتح خان حاسد وۀ هر يو کمزوري اوسست بادشاه سره هميش دا فکر وي چې هسې نه چې ما نه څوک بادشاهي واخلي چونکې د داسې بادشاه په خپل ځان باندې د خپلې سستۍ او د بيکارۍ په وجه څۀ اعتماد خو وي نه او خپل ځان د اصلي واقعاتو نه خبر هم نۀ ساتي په دې وجه هغه په لږو لږو خبرو باندې او په لږه لږه لمسه باندې شکمن کيږي. د ټولو نه وړومبے فتح خان باندې کامران شکايتونه شروع کړل. کامران اګرچې لا هلک وۀ ولې ډير سرتيزه او مغرور ظالم وۀ. علاوه د دې نه د عيش و عشرت هم ډير شوقين وۀ. د قندهار د فتح کيدو نه پس هغۀ خپل پلار سره کابل ته

راغلے وۀ او قریب وه چې د قندهار په حکومت مقرر شوے وے مگر بادشاه د هغۀ نه په یوه واقعه ډیر سخت خفه شو. د دې واقعې تفصیل دا دے چې څۀ وخت قیصر مرزا په قندهار کښې شکست وخوړو نو هغۀ شاه شجاع او خپل پلار شاه زمان سره لا نۀ ړو بلکې کابل ته سردار فتح خان له ورغے او هغۀ سره ئې استوگنه کوله. د کامران مرزا قیصر سره ورانه وه. او دا ئې نۀ غوښتل چې هغه دې د سردار فتح خان د حفاظت لاندې وسیږي. چنانچه یوه ورځ هغۀ قیصر مرزا په خپلو سړو باندې گرفتار کړو ولې څۀ وخت چې شاه محمود خبر شو نو کامران ته ئې حکم وکړو چې قیصر فوراً پریږده قیصر مرزا د دې نه یو څو ورځې پس بیا په یو باغ کښې کامران سره مخامخ شو او هیڅ بې هیڅه کامران د هغۀ سره خبرې تاؤ کړې او په قیصر باندې ئې د کونتې گوزار وکړو. فتح خان د کامران په دې سرتیزۍ ډیر خفه شو او بادشاه ته ئې ووئیل چې کۀ چرې د کامران د طبیعت دا حال وي نو هغۀ د پښتنو غوندې خودداره قوم باندې حکومت نشي کولے. پس له دې نه بادشاه فیصله وکړه چې کامران ته د یوې صوبې حکومت نشي حواله کیدے او کامران دې هم په کابل کښې د بادشاه زیر نگراني وسیږي په دې باندې د کامران خفگان د سردار فتح خان سره نور هم ډیر زیات شو او د هغۀ د بیخ کنۍ دپاره د موقع په تلاش کښې شو.

چونکې شاه محمود د سلطنت د ټولو فکرونو نه سردار فتح خان خلاص کړے وۀ او د هغۀ د قابلیت په وجه په ملک کښې هر طرف ته سکون او امن و امان وۀ په دې وجه بادشاه بالکل د سردار فتح خان د حاسدانو په چغلو غوږ نۀ کښیښودو او خپل ځان ئې خوش قسمته گڼلو چې د سردار فتح خان غوندې پښتون زما وزیر دے. فیریر په خپل کتاب کښې د سردار فتح خان د خوئ خصلت او د هغۀ د قوت انتظامي متعلق دا شان لیکي :

The first object of Fateh Khan after the restoration of Shah Mahmood to power was make the Amirs of Sindh and Baluchistan return to their duty; he then reduced to obedience the greater part of the tribes of the Hazaras, settled in the heart of the mountains of the Paropamisus. He also restored order in all the provinces made the laws, regulated the administration which upto that period had been in a most intricate state, giving rise to the most nefarious exactions and embezzlements of the most scandalous kind and lastly it might be said the security reigned every where. This remarkable man united to the superior genius a great aptitude for governing and for war; not one of his predecessors had been able to reduce rebels to obedience with the same promptitude or keep them afterward in the path of duty he struck hard but he was generous after the victory was gained as shone by his excessive liberality; always in the midst of combats he still found time to direct the helm of states and was ready for every thing in activity he had no equal. He was the eldest of the twenty one brothers, all men of mark, who powerfully assisted him by their support; he placed them as we have already said,

at the head of the Provincial Govt; putting much more faith in them than in the princes of the blood, or ambitious Sardars who, jealous of his fame, were occupied only in creating embarrassment for him, or in endeavouring to injure him in the opinion of his sovereign.

ترجمه: هر کله چې فتح خان شاه محمود بادشاه کړو نو سمدستي ئ دا کار وکړو چې د سندهـ او د بلوچستان اميران ئ مطيع کړل. او بيا د هزاره د قبيلې لويه حصه چې د کوه سفيد، د کوه بابا او کوه سياه په غرونو کښې اباد وو رعيت کړه. هغه په ټولو صوبو کښې د حکومت نظام قائم کړو. قوانين ئ جوړ کړل او د خلقو په زړونو کښې ئ د قانون قدر چې نۀ وۀ پاتې بيا قائم کړو. هغۀ ټول انتظامي امور درست کړل. د دې نه مخکښې د ملک حالت ډير ابتر او خراب وو. د خلقو نه به لوي لوي رقمونه په زور اخستې شو او سرکاري مال به هم په ډيرې بې دردۍ سره غبن کيدو. به آخر کښې دا هم ذکر کول پکار دي چې د هغۀ په زمانه کښې هر طرف ته امن و امان وۀ په دې نامتو بنيادم کښې علاوه د بيحد زير کتيا نه جنګي او انتظامي قابليت هم ډير زيات وۀ. د هغۀ نه په مقدم جانشينانو کښې يو کس هم دا شان نۀ وۀ چې باغي خلق ئ داسې اناً فاناً مطيع کړے وے. لکه څرنګ چې هغۀ زير کړي وو او نۀ ئ د هغۀ پشان په قابو او قبضه کښې ساتلي وو. په جنګ کښې به هغۀ ډيره سختي کوله ولې څۀ وخت چې به هغۀ فتح حاصله کړه نو بيا به ئ ډيره فياضي کوله. او د خپلې بې انتها فراخدلۍ په وجه به هغۀ خپل ځان نمايان کړو. عين د جنګونو په وخت کښې به هغۀ د حکومت د انتظام دپاره وخت راويستو او د هر قسم د واقعاتو دپاره به هر وخت تيار ناست وۀ. په چاقوالي کښې د هغۀ ثاني نۀ وۀ. هغه په خپلو يويشتو ورونو کښې د ټولو نه مشر وۀ. د هغۀ دا ټول ورونه ډير نامتو ځوانان وو او د هغۀ سره ئ د سلطنت په امورو کښې ډير امداد کولو. لکه څۀ رنګ چې مونږ ورومبے ذکر کړے دے هغۀ د صوبو حکومتونه د هغوي په حواله کړي وو. په دې ورونو باندې د هغه زياتي اعتبار او اعتماد وۀ. په نسبت د شاهي خاندان د هغې شهزادګانو او د هغه حريصو سردارانو نه چې د هغوي ټوله ورځ تش دا کار وۀ چې د بغض او کينې نه هغوي د سردار فتح خان په لاره کښې مشکلات پيدا کړي او د بادشاه په سترګو کښې د هغۀ د بدنامولو کوشش وکړي. د دې نه لږ اول فيرير ليکي:

"Fateh Khan did not abuse this unlimited confidence and soon restored to his country the splendour and glory of the days of the Great Ahmad Shah which had totally disappeared since the pacific reign of his son Teymoor.

The name of Fateh Khan soon became celebrated and popular through out Central Asia; the Afghans more especially held him in the greatest admiration and had on the contrary the greatest contempt for their King. Novertheless such was at this epoch the veneration they had for the Sadozais that they never thought of dethroning him in favour of his fortunate and able General. It is true many persons

have given Fateh Khan credit for the most ambitious views but on a close examination of the facts one remained convinced that this chief was sincere when he protested his devotion to the Shah and was contented with the high position which his sovereign had raised him. What indeed could be gained by becoming a king? only another title would have caused him immense embarrassment and a host of enemies without giving him more power. All the affairs of the kingdom were submitted to his discretion; he made his brothers in succession Governors of all the Provinces; he had the administration of the finances and the army; his orders were not subject to the least control. What could he desire more? Nothing and Shah Mahmood considered himself extremely fortunate in having as his minister a man who fulfilled his responsible and ardous duties. But those who envied the minister did not find him to their liking and were constantly seeking for an opportunity of inspiring the weak monarch with chimerical fears; amongst these was his son Kamran...

ترجمه :" فتح خان د بادشاه د دې بيحده اعتماد نه هيڅ ناجائزه فائده وچته نکړه. بلکې خپل وطن ئې د احمد شاه اعظم د زماني هغه جاه و جلال او عظمت ته بيا ورسولو چې کوم د هغهٔ د زوي تيمور شاه د نرم حکومت د وخت نه بالکل ورک شوے وهٔ. د فتح خان نوم ډيرو لږو ورځو کښې په ټول وسط ايشيا کښې خور شو. خاص طور سره خپلو پښتنو خو هغهٔ ته د بې انتها قدر په نظر کتل او بادشاه ته ئې سپک نظر کولو. ولې سره د دې د قام د خلقو په سترګو کښې د سدوزو د خاندان دومره عزت او احترام وهٔ چې د هغوي زړهٔ له هيچرې هم دا خبره رانغله چې بادشاه د تخت نه کوز کړو او د هغهٔ قابل او لائق جرنيل د هغهٔ په ځاے بادشاه کړو.

دې کښې شک نشته چې ډيرو کسانو د فتح خان برخلاف دا خبره کړې وه چې د هغهٔ په زړهٔ کښې د خپل ځان د وچتولو حرص پروت وهٔ ولې کهٔ چرې په واقعاتو باندې د نزدې نه نظر واچولې شي نو د سړي د زړهٔ دا تسلي وشي چې فتح خان د خپل بادشاه په ايمانداري سره وفادار وهٔ او کومه لويه درجه چې هغهٔ له بادشاه ورکړې وه په هغې باندې هغه صابر او شاکر وهٔ. او بادشاه کيدو کښې هغهٔ ته ګټه کومه وه؟ صرف د يو بل خطاب حاصلول چې د هغهٔ دپاره د بې حده سردردۍ او ډيرو دشمنانو جوړولو باعث شوے وهٔ. او د هغهٔ په اختياراتو کښې به ئې هيڅ اضافه نهٔ وه کړے. د سلطنت ټول امور به هغهٔ ته پيش کيدل د فيصلې دپاره ټول وروڼه هغهٔ پرله پسې د ټولو صوبو ګورنران کړي وو د خزانې او د فوځ ټول اختيارات د هغهٔ په لاس کښې وو او د هغهٔ په فيصلو کښې هيچا ردوبدل نشو کولے. نو نور هغهٔ څهٔ غوښتل. هيڅ هم نه. شاه محمود پخپله هم ځان ډيرخوش نصيب ګڼلو چې د هغهٔ وزير دا شان سړے وهٔ چې د هغهٔ ټولې ذمه وارۍ او فرائض په اعلیٰ پيمانه پوره کوي. ولې کومو خلقو چې د فتح خان سره حسد لرلو د هغوي هغه خوښ نهٔ وهٔ او هر وخت به د موقع په تلاش کښې وو چې د کمزوري بادشاه په زړهٔ کښې څهٔ فرضي ويري پيدا کړو. په دې کسانو

کښې يو خو د بادشاه خپل زوړ کامران وۀ."

د بلوچستان حکومت فتح خان خپل ورور رحمدل خان له ورکړو او شکار پور ئې د هغۀ صدرمقام کړو. بل ورور پوردل خان ئې په قندهار کښې حاکم کړو. د پېښور حکومت ئې دريم ورور سلطان محمد خان ته حواله کړو او شير دل خان ئې په غزني او کندل خان ئې په باميان کښې حاکمان کړل. او څۀ وروڼه ئې د هغوي د لاندې په ضلعو کښې مقرر کړل. محمد عظيم خان، جبار خان او نواب اسد الله خان چې دا هم د دوئ وروڼه وو او د ډېر لياقت او قابليت خاوندان وو هغوي ئې ځان سره وساتل. دوئ د هغۀ ذاتي مشيران وو او هغۀ له به ئې په سرکاري امورو کښې امداد ورکولو. دوست محمد خان چې د هغۀ کشر ورور وۀ هغه ئې د خپلو کورنو معاملاتو افسر کړو. د دې نه علاوه به دوست محمد خان په مختلفو لامونو کښې فوځي خدمات هم ادا کول. هرکله چې هغه په دې صوبو کښې په ښۀ شان سره امن و امان او د حکومت نظام قائم کړو نو بيا ئې د کشمير د تسخير اراده وکړه. شاه شجاع په خپله سوانح عمرۍ کښې د کشمير د دې حملې متعلق دا شان ليکي :

"When Shah Mahmood heard of the way in which we were treated the latent feelings of fraternal affection were aroused within him, and he immediately sent a force into the Barakzai country. After plundering the whole tribe of Ata Mohammad Khan, he carried men, women and children into captivity. Finding that this had not the desired effect viz, our release from bondage, he sent a force to Kashmir under Fateh Khan."

ترجمه :" هرکله چې شاه محمود ته زمونږ د بدسلوکۍ خبر ورسيدو نو په هغۀ کښې د ورورولۍ د محبت پټ جذبات راوچت شول او هغه سمدستي يوه دسته لښکر د بارکزو علاقې ته واستولو او د عطا محمد خان د قبيلې د مال تالا کولو نه پس ئې د هغوي ټول سړي، ښځې او بچي بنديوان کړل. هرکله چې په دې هم څۀ اثر ونۀ شو. (يعنې زۀ د قيد نه خلاص نۀ شوم) نو هغۀ بيا د فتح خان په سالارۍ کښې کشمير ته يو لښکر واستولو."

په کشمير کښې مختارالدوله چې د شاه شجاع وزير اعظم وۀ او شاه محمود نه ورومبې باغي شوې وۀ د هغۀ زوړ عطا محمد خان حاکم وۀ. عطا محمد خان خپل ځان د شاه شجاع د شکست نه پس په کشمير کښې خودمختار کړې وۀ. هم دغه شان رنجيت سنگهه د شاه زمان د شکست نه پس ځان په پنجاب کښې خودمختار کړو. مگر سردار فتح خان ورومبې د کشمير اراده وکړه او په دې ځاے کښې ئې د رنجيت سنگهه نه مدد وغوښتو. د کشمير نه پس د هغۀ اراده د پنجاب د اخستو وه. پس هغۀ رنجيت سنگهه سره د دريائے جهلم په غاړه يوه عهدنامه وکړه چې په هغې کښې سردار فتح خان رنجيت سنگهه له د کشمير د ماليې نه د نهو لکو روپو ورکولو اقرار وکړو او رنجيت سنگهه هغۀ سره د فوځي امداد وعده وکړه. او د رنجيت سنگهه د طرفه دغه وخت د محکم چند د کمان د لاندې د

لسو زرو سکهانو د ورکولو اقرار وشو. ولې د دې امدادي فوځ د رارسيدو نه وړومبے فتح خان په کال 1811ء کښې د بمبر په لاره په کشمير لشکرکشي وکړه. د باغيانو فوځ د مقابلې دپاره د پير پنجال په درو کښې ديره وۀ. فتح خان په هغوي د مخامخ نه او کندل خان پرې د شا نه راپريوتل ولې هغوي بغير د جنګ نه تيښته وکړه. عطا محمد خان پس د دې نه څۀ قابل ذکر مقابله ونکړه. او اخر کار ئې د صلح دپاره درخواست وکړو. چونکې فتح خان د پښتنو په منځکښې بالکل جنګ نۀ غوښتلو فوراً ئې عطا محمد خان سره راضي نامه وکړه او د عطا محمد خان ډير قدر او عزت ئې وکړو. او شاه محمود ته ئې د هغۀ ډير سفارش وکړو. دي نه پس هغۀ د کشمير حکومت سردار محمد عظيم خان ته چې هغۀ د دۀ د تولو وروڼو نه مشر وۀ د دۀ کشر ورور وۀ حواله کړو.

شاه شجاع چې عطا محمد خان سره تراوسه پورې بنديوان وۀ د فتح خان په حکم باندې ازاد کړې شو او د سکهانو او د فتح خان په درخواست باندې هغه د خپل حرم خلقو سره د يو ځاے کيدو دپاره لاهور ته لاړلو. شاه شجاع د دې متعلق دا رنګ ليکي:

"Mohkem Chand on the part of Ranjeet Singh, informed us that his master was anxious that we should proceed to Lahore as soon as at liberty, and visit the residence of our seraglio in the city; he mentioned that his master's fame would be increased by our going. According to Fateh Khan's petition we agreed to this, marched towards Lahore with Mahkem Chand and other singhs, whilst Fateh Khan returned to Shah Mahmod in Kabul "

ترجمه: "محکم چند د رنجيت سنګهـ د طرف نه مونږ ته دا خبره وکړه چې زما د مالک دا خواهش دے چې مونږ دې د رهايي نه پس د لاهور په طرف روان شو او خپل د کور خلقو سره په هغه ځاے کښې يو ځاے شو. محکم چند دا هم ووئيل چې زما د مالک به ډير نوم وشي کۀ چرې مونږ لاهور ته لاړو. د فتح خان د درخواست مطابق مونږ دې تجويز سره اتفاق وکړو او محکم چند او د نورو سکهانو سره د لاهور په طرف روان شو. فتح خان شاه محمود له کابل ته واپس شو."

لاهور ته د رسيدو سره رنجيت سنګهـ د شاه شجاع نه د کوه نور مطالبه وکړه. شاه شجاع مهلت وغوښتو او د رنجيت سنګهـ قاصد ته ئې ووئيل چې څۀ وخت زۀ د رنجيت سنګهـ د ميلمستيا په خوړو باندې پوهه شم نو بيا به کوه نور هغۀ ته ورکړم. رنجيت سنګهـ د ميلمستيا د قواعدو خلاف اوس دا نيت وکړو چې په هره طريقه وي چې زۀ د شاه شجاع نه کوه نور واخلم. پس د دې نه هغۀ شاه شجاع سره زور زياتے او جبر راواخستو او قسماقسم بې عزتي او تکليفونه ئې ورته ورکړل. شاه شجاع په دې باره کښې په خپل قلم داسې ليکي:

"We then experienced privations of the necessaries of life, and sentinels were placed over our dwelling. A month passed in this way. Confidential servants of

Ranjeet Singh then waited on us, and inquired if we required ready cash, and would enter into an agreement and treaty for the above mentioned jewel. We answered in the affirmative, and next day, Ram Singh brought 40,000/- or 50,000/-rupees and asked again for the Kohinoor, which we promised to procure when some treaty was agreed upon. Two days after this, Ranjeet Singh came in person and after friendly protestations he stained a paper with safflower, and swearing by the granth of Baba Nanak, and his own Sword, he wrote the following security and compact: That he delivered over the Provinces of Kote Cumaleeh, Jung Shawal and Khuleh Noor to us and our heirs for ever also offering assistance in troops and treasure for the purpose of again recovering our throne. We also agreed, if we should ever ascend the throne, to consider Ranjeet Singh always in the light of an ally. He then proposed himself that we should exchange turbans, which is amongst sikhs a pledge of eternal friendship, and then we gave him the Koh-i-Noor."

ترجمه : "مونږ له بیا د خرڅ خوراک د نهٔ راکولو په سبب فاقې راکړې شوې او زمونږ د استوګنې په ځائې باندې سنتریان مقرر شول. یوه میاشت په دې رنګ تیره شوه. بیا د دې نه پس د رنجیت سنګهـ اعتباري نوکران مونږ له راغلل او تپوس ئې را نه وکړو چې څهٔ نقد مال زمونږ په حاجت شته او کهٔ نه. او دا چې مونږ د دې لعل د خرڅولو دپاره څهٔ اقرار نامې لیکلو دپاره تیار یو کهٔ نه؟ مونږ ورته په جواب کښې ووئیل چې او. نو سبا له رام سنګهـ ځان سره څلویښت لا پنځوس زره روپی راوړې او بیا ئې کوه نور زمونږ نه وغوښتو. مونږ ورته ووې چې ښه در به کړم خو چې د عهدنامې شرطونه فیصله شي. د دې نه دوه میاشتې پس رنجیت سنګهـ پخپله راغے او د ډیرو دوستانه خبرو نه پس ئې په کاغذ باندې د زعفرانو د ګل یو تکے وکړو او د بابا نانک په ګرو ګرنتهـ او پخپله توره ئې قسم وخوړو او دا اقرار او ضمانت ئې ولیکلو : (چې رنجیت سنګهـ مونږ له او زمونږ وارثانو له د همیشه دپاره د کوټ کماله، جنګ شال او خوله نور صوبې راکړې او نور اقرار ئې دا وکړو چې رنجیت سنګهـ به مونږ له د خپل تخت د حاصلولو دپاره د فوځ او د خزانې امداد راکوي. او زمونږ د طرف نه ورسره دا اقرار وشو. چې کهٔ مونږ چرې د خپل تاج تخت مالکان شو نو مونږ به رنجیت سنګهـ ته د یو دوست په سترګه ګورو. د دې نه پس بیا هغهٔ پخپله دا تجویز پیش کړو چې مونږ دې پټکي یو تر بله بدل کړو او دا په سکهانو کښې د دائمي دوستۍ یو پوخ اقرار دے. دا هر څهٔ چې وشو نو بیا پس ته مونږ هغهٔ له کوه نور ورکړو".

رنجیت سنګهـ د کشمیر د مسخر کیدو نه پس د دې صوبې حکومت د ځان دپاره غوښتلو. مګر سردار فتح خان انکار وکړو په دې باندې رنجیت سنګهـ ډیر خفه شو او په واپسی باندې ئې د اټک قلعه چې د دریائے سندهـ په ګس لاس باندې ده د هغې ځائے د ګورنر نه په یو لک روپو رشوت ورکولو باندې ونیوه. (د دې علاقې ګورنر د عطا محمد

خان ورور وۀ) او خپل فوځونه ئ پکښې ديره کړل. څۀ وخت چې فتح خان د رنجيت سنګهـ د دې بې لوظئ نه خبر شو نو د رنجيت سنګهـ برخلاف د کشمير نه راروان شو او خپل ورور دوست محمد خان ئ د دوه زره کسانو سره په طور د هراول وړاندې راوليږلو. څۀ وخت چې سکهان د دوست محمد خان د هراول د فوځ نه خبر شو نو د چچ ميدان ته راکوز شول او په يوه چينه باندې چې په غرونو کښې وه او په هغه ټول ميدان کښې او بۀ صرف هم دغه ځاے کښې وے پريوتل. دوست محمد خان غوښتل چې د خپل ورور د رارسيدو نه وړومبے وړومبے زۀ سکهان د دې چينې او د دې سنبوئ مقام نه لرې کړم او خپله توررزني او بهادري فتح خان ته ښکاره کړم. رارسيدو سره هغۀ دا خپل دوه زره کسان قريباً په شپاړسو زرو سکهانو باندې په داسې تيزئ ورارتاؤ کړل چې په اولنى حمله کښې هغۀ د سکهانو ټوله توپخانه واخسته. مګر د هغۀ دا کاميابي ديرپا نۀ شوه. سکهان پرې د څلورو واړو طرفونو نه راټول شول او يوه سخته خونريزه مقابله وشوه چې په هغې کښې فريقينو د خپلې خپلې بهادرئ داد ورکړو.

دا جنګ په ديارلسمه جولايي 1813ء کښې شوے وۀ. دوست محمد خان چې پوهه شو چې د دومره ډير زيات دشمن په مقابله کښې فتح حاصلول ګران دي نو هغۀ فتح خان ته د امداد دپاره استاذے وليږلو او په دې منځکښې ئ په ډير شجاعت او بهادرئ سره مقابله جاري وساتله. د بدقسمتئ نه د دوست محمد خان سړي لار غلطه کړه او فتح خان ته ونۀ رسيدو. بل خوا فتح خان ته چا غلط خبر ورکړو چې دوست محمد خان د سکهانو د لاسه شکست وخوړو او په جنګ کښې مړ شو. پس هغۀ د اټک نه لار بدله کړه او د دريائے سندهـ نه د اټک د مقام نه لږ بره پورې وتلو. دوست محمد خان د دې خبر په اوريدو سره په سکهانو باندې د فتح حاصلولو طمع قطع کړه او په يوه ډيره لويه حکمت عملئ سره ئ خپل پاتې شوے فوځ صحيح سالم واپس کړو. او هم په هغه لارې د دريائے سندهـ نه پورې وتلو چې په کومه سردار فتح خان پورې وتے وۀ. کۀ چرې دوست محمد خان د خپلې ځوانئ په جوش کښې د ناتجربه کارئ په وجه سمدستي د سکهانو په فوځ حمله نۀ وے کړے او د سردار فتح خان د فوځ انتظار ئ کړے وے نو پښتنو به ضرور يوه قطعي فتح حاصله کړې وه.

بيا رنجيت سنګهـ په جون 1814ء کښې خپل لوے لښکر د کشمير د تسخير دپاره روان کړو. دې لښکر په ابتدا کښې خو څۀ کاميابي حاصله کړه او يو ورکوټے غونډې ښار ئ د عظيم خان نه لاندې هم کړو ولې عظيم خان په ډير استقلال د هغۀ مقابله وکړه او بالاخر ئ رنجيت سنګهـ له دا شان شکست ورکړو چې د هغۀ ټول لښکر تس نس شو. او رنجيت سنګهـ بالکل يواځې د اګست په مياشت کښې لاهور ته راوتښتيدو. په دې جنګ کښې د رنجيت سنګهـ يو ډير بهادر جرنيل متهـ سنګهـ بهرانيه قتل شو. د دې نه پس رنجيت سنګهـ

تر کال 1818ء پورې د پښتنو په پاتې شوو مقبوضاتو باندې ونهٔ بلوسيدو. مگر په کال 1818ء کښې مظفر خان د ملتان گورنر خپل ځان قريباً قريباً د کابل د بادشاه نه خودمختاره کړے وهٔ. په دې وجه رنجيت سنگهه بيا په هغهٔ باندې د حملې کولو جرأت وکړو. او قريباً د شپږو مياشتو د جنگونو او د مقابلو نه پس اخر د دې ښار په اخستو کښې مکمل طور سره کامياب شو. مظفر خان او د هغهٔ دوه زامن په دې جنگ کښې قتل شول. او دوه زامن ئې د سکهانو په لاس کښې بنديوان شول.

فتح خان چې څهٔ وخت د کشمير د فوځ کشی نه واپس راغے نو دوه کاله ئې د ملک اندروني معاملات سم کړل مگر په کال 1816ء کښې د هرات معاملاتو هغه دې ملک طرف ته متوجه کړو. په هرات کښې حاجي فيروزالدين چې د شاه مُحمود وررور وهٔ حاکم وهٔ او اگر چې ځان ئې براۓ نام د شاه محمود ماتحت گڼلو مگر په حقيقت کښې هغهٔ د کابل د بادشاه نه ځان قريباً قريباً خودمختار گڼلو. د هغهٔ د عام طرز حکومت نه د هرات خلق خوشحاله وو. هغه په حيثيت مجموعي يو نرم مزاج او اعتدال پسند حاکم وهٔ قريباً شپاړس کاله هغهٔ په هرات حکومت کړے وهٔ او په دې زمانه کښې هغهٔ ته ماسواۓ د ايرانيانو نه د بل چا د لاسه څهٔ تکليف نهٔ وهٔ رسيدلے. لکه څرنگ چې وړومبے ذکر شوے دے فتح علي شاه هر وخت په دې فکر کښې لگيا وهٔ چې هرات د ايران په سلطنت کښې شامل کړم. چنانچه د هغهٔ د فوځونو د حملې او د شکست په تفصيل سره بيان شوے دے. په حقيقت کښې شاه ايران د هرات اخستو ته انگريزانو لمسولو. ځکه چې د ايران او د انگريزانو په منځکښې د روس او د فرانس په هندوستان باندې د حملې کولو د تجويز برخلاف د دوستۍ عهدوپيمان شوے وهٔ. پس د انگريزانو دا خيال وهٔ چې کهٔ چرې هرات د ايران په لاس راشي نو د روس دپاره به په افغانستان کښې داخليدل قريباً قريباً ناممکن شي. حاجي فيروزالدين بغير د کابل د بادشاه د امداد نه د ايران د فوځونو مقابله کړې وه. او هغوي له ئې شکست ورکړے وهٔ. او د ايران کوششونو له هغهٔ د خراسان د خانانو په ملگرتيا چې هغوي سره هغهٔ د دوستۍ جنبه او اتحاد ساتلے وهٔ زک ورکړے وهٔ. مگر فتح علي شاه په هرات باندې دعويٰ ځکه نهٔ پريښوده چې دا علاقه يوه موده کښې په ايراني سلطنت کښې شامله وه. حاجي فيروزالدين هغهٔ ته دا جواب ورکړے وهٔ چې هرات د ايران د نورو ممالک مفتوحه ؤ په شان سم په ميدان جنگ کښې د ايران نه ځان ازاد کړے دے او کهٔ چرې د ميرمحمود او د مير اشرف د قوم د خلقو دا دعويٰ نشته چې چونکې ايران باندې پښتنو څهٔ زمانه حکومت کړے دے په دې وجه ايران پښتنو ته پريږدئ نو ايرانيانو له هم په دې بنا باندې په هرات دعويٰ نهٔ ده پکار. او چونکې د هرات اکثره ابادي د پښتنو ده او د سدوزو د قبيلې نه بادشاهان د اولس په خوښه منتخب شوي دي. د دې دپاره ايران له زما برخلاف فوځ کشي کول بالکل خلاف شريعت، رواج او انصاف

دي. چونکې ایران سره دا ټولې جګړې د ډیرې زمانې نه حاجي فیروزالدین په خپل سر کړے وے لـه دې کبلـه هغهٔ د یو څو کلونو نه دارالسلطنت کابل ته د هیڅ قسمه مالیه یا خراج نهٔ وهٔ ورکړے. او خپل ځان ئې قریباً قریباً خودمختاره کړے وهٔ. په کال 1816ء کښې څهٔ وخت چې فتح علي شاه د خراسان د فتح نه بالکل وزګار شو نو هغهٔ یو لوے لښکر د هرات د اخستو دپاره بیا تیار کړو. دا ځل هغهٔ ته معلومه شوه چې په یواځې ځان زهٔ د فتح علي شاه مقابله نشم کولے مګر بل خوا د شاه محمود بادشاه د فوځونو هرات ته په راتلو هم خوښ نهٔ وهٔ. د هغهٔ په زړهٔ کښې دا خوف وهٔ چې کهٔ چرې یو ځل د شاه محمود فوځونه هرات ته راغلل نو د هرات حکومت بـه زما د لاسه وځي. ولې څهٔ وخت چې د فتح علي شاه فوځونه د هرات په طرف رااروان شول نو هغهٔ د شاه محمود نه امداد وغوښتو. هغهٔ فوراً سردار فتح خان سره د فوځونو ولیږلو. دې خوا د ایران د بادشاه ټول فوځ په مشهد کښې راجمع شوے وهٔ او د فتح علي شاه زوے حسین علي مرزا د فوځ سالار شو. کالج خان د تیموني قبیلې سردار چې د هرات په علاقه کښې یو ډیر زورور سردار وهٔ هم سره د یو لویه لښکره هغهٔ سره شامل شو. کهٔ چرې دا ټول فوځ هم دغه وخت په هرات راپریوتې وے نو هرات به ضرور ایرانیانو اخستے وے مګر حسین علي مرزا د یو څو لویو توپو د راتلو په انتظار کښې ایسار شو. دې ډیل فتح خان له دومره موقع په لاس ورکړه چې هغه د هرات امداد ته ورسیدو.

فیریر وائي چې د سردار فتح خان فوځونو د کابل او د هرات په منځکښې لار دومره لږ وخت کښې ووهلـه چې په دې ملک کښې ورومبے هیچا هم دومره زر نهٔ وه وهلې. او ایرانیان لا هم هغه شان د خپل سرحد دننه وو. چې هغه هرات ته راورسیدو. فتح خان د 1816ء پهاخر اخر کښې هرات ته راغے. حاجي فیروزالدین د هغهٔ ډیرخاطر تواضع وکړه. او خپل ځان ئې هغهٔ ته په ظاهره د هغهٔ ډیر دوست او وفادار ظاهر کړو. مګر د خپل نور طرز عمل نه هغهٔ سردار فتح خان ته دا ښودل چې زهٔ په شاهي فوځونو بدګمانه یم. او کهٔ چرې شاهي فوځونه په ښار کښې دننه داخل شول نو شاید چې هغوي په هرات باندې قبضه وکړي. پس هغهٔ سردار فتح خان ته دا ووئیل چې صرف پنځوسو سړو سره تهٔ دننه ښار ته راتلے شے. مګر شاهي فوځونه دې د ښار نه بهر دیرې ولګوي. وزیر فتح خان په دې ډیر سخت ناراضه شو او دا ئې د حاجي فیروزالدین د بغاوت او د بادشاه نه د خودمختارۍ یوه علامه وګڼله. مګر هغهٔ د ایراني فوځ په موجودګۍ کښې حاجي فیروز الدین سره علانیه جنګ کول نهٔ غوښتل. چنانچه هغهٔ خفګان بالکل پټ کړو او د حاجي فیروزالدین حکم ئې په ظاهره کښې ومنلو. مګر ښار ته د داخلیدو په وخت کښې هغهٔ داسې پنځوس کسان ځان سره بوتلل چې د هغوي د هرات په ښار کښې دننه ډیرو خاندانونو سرهخپلولي وے.

پس څهٔ وخت چې هغه ښار ته دننه شو نو د هغهٔ هغه پنځوسو ملګرو خپلو رشته دارانو

سره دومره تعلق زيات كړو چې د فتح خان هرات ته د رارسيدو نه ځلور ورځې پس د ښار دروازې شاهي فوځ ته پرانستې شوې او په ښار باندې شاهي فوځ قبضه شو. او د هرات قلعه په دويمه ورځ سلامي شوه. بيا د هغې نه پس هغۀ حاجي فيروزالدين گرفتار كړو او په ډير عزت سره ئې كابل ته د هرات د ماليې حساب كتاب دپاره وليږلو. ولې چې هغۀ د ډير عمر نه د كابل بيت المال ته هيڅ شے نۀ وۀ وركړے او ټول مال ئې په خپله خردبرد كړے وۀ.

فيرير وائي چې فتح خان تر دې حده پورې خو بالكل په انصاف وۀ مگر دا نۀ ده معلومه چې آيا دا د فتح خان د حاجي فيروزالدين نه د خفگان وجه وه او كۀ د فتح خان د احكامو نه چا څۀ زياتے كړے وۀ چې د حاجي فيروزالدين ټول مال ضبط كړې شو او چونكې د هغۀ ټول مال و دولت په كور كښې دننه حرم كښې پروت وۀ. د هغۀ د كور پرده ماته كړې شوه او كوم خلق چې د دوست محمد خان د مشرى د لاندې د هغۀ د مال د قبضه كولو دپاره مقرر شوي وو هغوي د حاجي فيروزالدين په حرم كښې بې تپوسه لوټمار شروع كړو. او د شهزادگو نه ئې جامې هم راوشوكولې او دوست محمد خان پخپله د شاه محمود د لور د پرتوگ نه څۀ جواهرات وشوكول. د شاه محمود لور د حاجي فيروزالدين په زوي ملك قاسم باندې وادۀ وه. ميلسن وائي چې دوست محمد خان د فتح خان د حكم او د مرضى نه بالكل برخلاف د حاجي فيروزالدين حرم كښې وردننه شو او د ټول كور مال ئې ورله لوټ كړو. فتح خان چې څۀ كارروائي د حاجي فيروزالدين برخلاف وكړه هغۀ هغه بالكل په نيك نيتى او د سلطنت د حفاظت دپاره وكړه. د هرات اهميت د پښتنو د سلطنت د حفاظت دپاره هغۀ ته معلوم وۀ. او تر څو پورې چې شاهي فوځونو په هغې قبضه نۀ وه كړې دا ډيره اغلبه وه چې ايرانيانو هرات اخستے وے. او بيا د هرات نه پس ټول افغانستان په خطره كښې شوے وے.

هركله چې سردار فتح خان په هرات قبضه وكړه نو بيا هغۀ د هرات نه د ايراني فوځ د مقابلې دپاره ووتلو او شپيتۀ ميله فاصله باندې د كافر قلعه په ميدان كښې كسان كلي سره ديره شو. د ايرانيانو فوځ هم په دغه ځاے كښې پروت وۀ. شهزاده حسين علي مرزا سره ډير اعلیٰ فوځ وۀ. هغۀ په ميدان جنگ كښې په وړومبي صف كښې ځلور پلټنې د سردار ذوالفقار خان په ماتحتى كښې ودرولې. دې خوا نه سردار شيردل خان چې د فتح خان ورور وۀ د ايرانيانو په دې فوځ خپله رساله ورپريښوده او په وړومبى حمله كښې ئې د ايرانيانو فوځ تس نس كړو مگر څۀ ساعت پس هغوي بيا راټول شول او په ډير جوش سره ئې دوباره جنگ ونښلولو. د سبا د ختو نه تر مازيگره ډير سخت جنگ وشو د ايرانيانو لس زره تنه ميدان جنگ كښې مړۀ شو.

سردار كندل خان د فتح خان بل ورور په دې موقع باندې خپله رساله په مات شوي

فوځ ورخلاصه کړه. ایرانیان دا شان وتښتیدل چې په مشهد کښې ئ ساه واخسته. دې خوا په پښتنو کښې یوه عجیبه واقع وشوه چې د هغې په وجه د ایران د فوځ تعاقب د پښتنو نه پاتې شو. څهٔ وخت چې جنګ په ختمیدو شو نو فتح خان د جنګ حال احوال معلومولو دپاره په فوځ کښې رانـوتـلـو. اتـفـاق سـره یـوه سـره ګولۍ د هغهٔ په خلهٔ باندې ولګیده او د اس نه راپـریـوتـو. د هغهٔ ملازمانو هغه سمدستي خیمې ته یوړو ولې په فوځ کښې دا خبره خوره شوه چې فتح خان قتل شـو. ټـولـو سـره د هـغهٔ فکر شو او په فوځ کښې یو هلچل جوړ شو. ډیر ساعت پس فوځ تـه معلومه شوه چې فتح خان جک جوړ دے مګر په دې منځکښې ایراني فوځ ډیر لـرې تښتیـدلے وهٔ او پښتـنو د هغوي تعاقب ونکړې شو. د دې شکست نه پس بیا ایرانیانو د هرات نوم تر ډیرې مودې پورې وانهٔ خستو او فتح خان د علاقې په انتظام، د ښار په تحفظ د مالیې په ټولولو او د عدالتونو په قائمولو کښې مصروف شو. فیریر وائي :

" His just and enlightened administration obtained for him the esteem and affection of the inhabitants. I have had opportunities of conversing with many Hirathis who were acquainted with this remarkable man, and they spoke of him with veneration. His virtues were as great as his courage; he was completely devoted to the glory and interest of his country; his fame carried to the highest point by his last victory; and he was making his preparations for the conquest of Khorasan when a fearful catastrophe deprived Afghanistan of this worthy man, and annihilated the generous designs which he had conceived for her, and which would have made that kingdom as prosperous and powerful as it had been under the great Ahmad Shah."

تـرجمه : " د هغهٔ عدل و انصاف او حسن و انتظام د هراتیانو په زړهٔ کښې د هغهٔ قدر او محبت پیـدا کـړو. هـغـه وائي چې ما په هرات کښې دا شان ډیرو کسانو سره د فتح خان بابت خبرې کـړې دي. چـې چـا هـغـه پـخپلو سترګو لیدلے وهٔ. او هغوي ټولو د هغهٔ نوم په ډیر عزت سره اخستـلـو. پـه هغهٔ کښې د نیکۍ او د ښیګړو صفتونه هم دومره ډیر وو لکه څومره چې په هغه کښې جرأت وهٔ. هغهٔ د خپل ملک په عزت او ننګ ناموس باندې بالکل قربان وهٔ. د هغهٔ نوم پـه دې اخري فتح باندې د حد نه زیات لوړے شوے وهٔ. او هغهٔ اوس ځان د ټول خراسان د فتح کولو دپاره سنبالولو چې یوې هولناکې واقعې د افغانستان ملک د دې قابل سړي د لیاقت نه د هـمیش دپاره محروم کړو. او د هغهٔ هغه ټولې نیکې ارادې چې د هغهٔ په زړهٔ کښې د خپل قوم او مـلـک د وچتـولـو دپـاره پـرتې وې هغه ټولې په خاورو کښې یو ځاے شوې. کهٔ چرې هغه پـخپـلـو ارادو کښـې کـامیـاب شوے وے نو د پښتنو حکومت به دومره زور او طاقت حاصل کړے وهٔ څومره چې هغهٔ د احمد شاه اعظم په وخت کښې حاصل کړے وهٔ."

د شـخـصـي او تـول واکـو طرز حکومت د پلیتۍ د دې نه زیاتې خراب بل مثال نشي کیـدے. چـونـکې د حکومت او د بادشاهۍ ټول اصلي اختیارات د یو او د صرف یو سړي په

لاس کښې وو هغهٔ بغیر د څهٔ تحقیق نه د بل په لمسه باندې د خپل فرضي وقار د ساتلو دپاره د خپل ټول قام او د ملک په ګیډه چاړهٔ ومنډله او پښتون قوم ئ د همیش دپاره د خلقو د خندا کړو. فَاعْتَبِرُوا يَا أُولِي الْأَبْصَار.

کامران چې د شاه محمود زوی وهٔ هغه سخت بدچلنه، بدکرداره او بدخویه بنیادم وهٔ او د ورانو کارونو نه ماسوا د هغهٔ په دماغ کښې چرې څهٔ نیکه خبره نهٔ وه راغلې. هغهٔ سره لکه د پلار بغیر د خپل ځان د خوشحالۍ او د ارام نه بل هیڅ فکر نهٔ وهٔ. د هغهٔ د ډیرې مودې نه دا کوشش وهٔ چې زهٔ د دارالسلطنت نه چرته لرې یوه داسې صوبه کښې حاکم شم. چې د پلار او نورو سردارانو د نظر نه غائب او پناه یم. او خپل عیش و عشرت بې روکه ټوکه ازادۍ سره کوم. مګر سردار فتح خان د هغهٔ دا مطلب سر ته رسیدو ته نهٔ پریښودو. او بل هغهٔ بلا وجه قیصر چې د سردار فتح خان په حفاظت کښې وسیدو قتل کړے وهٔ. او چونکې د فتح خان په وینا باندې د هغهٔ پلار شاه محمود د خپل ځان مخکښې د دهٔ د وسیدو حکم کړے وهٔ. د هغه ورځې نه کامران د فتح خان نه د بدل اخستو په داؤ کښې ناست وهٔ او همیش به ئ بادشاه ته د هغهٔ د وسیع اختیاراتو او د هغهٔ د ډیر طاقت او د زور خبرې کولې د بادشاه په زړهٔ کښې به هغهٔ هروخت دا شکونه اچول چې د فتح خان ستا نه د بادشاهۍ اخستو نیت دے. په دې لمسون کښې هغهٔ ځان سره د فتح خان ډیر حاسدان او دشمنان سرداران هم شامل کړل. ولې شاه محمود تراوسه پورې د هیچا په خبره باندې غوږ نهٔ وهٔ ایښے. ځکه چې بلا تکلیفه د هغهٔ حکومت په ښهٔ شان سره چلیدو او هغهٔ ته هر قسم عیش و عشرت او ارام حاصل وهٔ. او د هغهٔ په شاهي اختیاراتو کښې هم څهٔ کمے نهٔ وهٔ واقع شوے. مګر څهٔ وخت چې حاجي فیروزالدین کابل ته بندیوان راوستے شو نو کامران د بادشاه په زړهٔ کښې دا خبره کښېنوله چې اوس خو سردار فتح خان د شاهي خاندان د خلقو په بیخ کنۍ پسې لګیا شوے دے. هغهٔ بادشاه ته د حاجي فیروزالدین د حرم د لوټ کیدلو د شهزادګو د بې عزته کیدلو او د هغوي نه جامو او د کالو د راشوکولو قصې له ډیر لوے رنګ ورکړو. حاجي فیروزالدین خو هسې هم د فتح خان نه خفه وهٔ هغهٔ هم خپل ورور ته یو شور او واویلا عین په دربار کښې جوړه کړه او ورته ئ فریاد وکړو چې فتح خان زما د حرم پرده ماته کړه ستا د لور نه ئ کالي راشوکول، ټول مال ئ زما لوټ کړو او زهٔ ئ په ډیرې بې عزتۍ کابل ته راولیږلم.

کامران، حاجي فیروزالدین او نورو سردارانو په یو سازش سره بادشاه ته قسم قسم خبرتونه ورمخکښې کړل او ورته ئ ووئیل چې دا د حاجي فیروزالدین بې عزتي نهٔ ده بلکې د بادشاه د ذات سپکاوے دے. هغوي بادشاه ته دا ننګ ورواړولو چې د ملک قاسم ښځه چې ستا لور ده د هغې نه دوست محمد خان کالي را وشوکول او هغه ئ بې پردې کړه. په دې پغلو او لمسون هغوي د بادشاه غیض و غضب دومره مشتعل کړو چې اخر حکم ئ وکړو

چې د فتح خان نه سترګې وباسئ. په دې حکم باندې د کامران د خوشحالۍ څهٔ حد پاتې نشو او بادشاه ته ئې ووئيل چې د خپل ترهٔ د بې عزتۍ د بدل اخستو دپاره زهٔ پخپله هرات ته ځم. پس هغه د بادشاه حکم ځان سره پټ وساتلو او فوراً د 1817ء په اخر کښې يعنې د ژمي په موسم کښې هغه هرات ته د سردار فتح خان څهٔ چې د ټول افغانستان نه د سترګو ايستو دپاره روان شو.

دا مجسم شيطان چې څهٔ وخت هرات ته ورسيدو نو سردار فتح خان د هغهٔ په راتلو ډير حيران شو ځکه چې د بادشاه د طرف نه کامران ته د کابل نه د وتلو حکم نهٔ وهٔ. ولې سره د دې څهٔ کسانو هغهٔ ته پټ پټ دا هم ووئيل چې شاه محمود پخپله کامران ستا د ګرفتارولو دپاره راليږلے دے. مګر د هغهٔ په دې خبره بالکل باور نهٔ کيدو. ځکه چې د شاه محمود نه د هغهٔ د داسې ظلم او د ناشکرۍ بالکل طمع نهٔ کيدله. او نهٔ ئې دا خيال وهٔ چې بادشاه بغير زما د جواب غوښتلو نه زما برخلاف څهٔ کارروائي کوي. د هغهٔ بالکل خپل زړهٔ صاف وهٔ او هغه هر څهٔ چې کړي وو د دې شاه محمود د سلطنت د حفاظت او د استحکام دپاره ئې کړي وو او چونکې هغه پخپل زړهٔ کښې غل نهٔ وهٔ. د دې دپاره هغهٔ د کامران په ډير احترام او عزت سره استقبال وکړو او په حيثيت د بادشاه د زوي ئې ځان د هغهٔ ماتحت وګڼلو. او د کامران هرات ته د رارسيدو نه پس به هره ورځ فتح خان د هغهٔ سلام له د هغهٔ ځاے ته تلو. او د هغهٔ نه به ئې د اُمور سلطنت په بابت احکام حاصلول. په ځاے د دې چې هغهٔ د کامران په نيت څهٔ شک يا بدګماني کړے وے هغهٔ د کامران د زړهٔ نه د تيرو شوو خفګانونو د لرې کولو کوشش کولو او هغهٔ ته ئې د دې هم يقين ورکولو چې زما مدعا ذاتي طاقت حاصلول نهٔ دي بلکې د سدوزو د خاندان عزت او د پښتون قام وچتوالے زما اصلي مراد دے. مګر دې خبيث او بدنيته انسان د خپل زړهٔ نه هغه زوړ بغض او حسد او رنجش بالکل لرې نهٔ کړو. او برابر ئې د فتح خان د ګرفتارولو دپاره مناسب موقع لټوله. چنانچه يوه ورځ څهٔ وخت چې فتح خان سره د خپلو يو څو سرو باغ شاه ته د کامران سلام له راغے نو هغهٔ فوراً ګرفتار کړو. او سمدستي ئې ترينه سترګې وويستې. او په دې شان دې کمبخت بنيادم د پښتنو د بدنصيبه قوم په ګيډه چاړهٔ ومنډله. د پښتنو اصلي او اخري زوال د دې تاريخ نه پس شروع شو او په يو څو کاله کښې د دنيا په قامونو کښې دا شان ذليل او رسوا شول چې د هغوي ټول ملک په ډيره لږه موده کښې د غير قومونو په قبضه کښې راغے. بيا د هغوي د لاسه ورته قسم قسم ظلمونه او بې عزتي پيښې شوې.

سردار فتح خان سره په هرات کښې په دې ورځو کښې درې ورونه پوردل خان، شيردل خان او کندل خان د چار باغ په محل کښې وسيدل. باغ شاه د ښار نه بهر پروت وهٔ او هغوي د دې واقعې په وخت کښې بالکل بې خبره د شطرنج په لوبه کښې مشغول وو.

ـغوي بـه عـام طور سره د فتح خان سره يو ځاى باغ شاه ته د كامران ملاقات له تلل. مگر په
ې ورځ پـوردل خان ناجوړه وه او اتفاق سره شيردل خان او كندل خان هغه سره پاتې شول.
كامران مطلب خو دا وه چې څلور واړه وروڼه به زه يو ځاى گرفتار كړم او په يو ځل به ترينه
ـان خـلاص كـړم مـگـر څه وخت چې هغه پوهه شو چې دا نور درې واړه د فتح خان سره په
ـنجـه كښې رانغلل نو ډير خفه شو او سمدستي ئې د فوځ يوه دسته د هغوي د گرفتارۍ دپاره
ليږله. د خوش قسمتۍ نه د هغوي يو نوكر اتفاقاً د سردار فتح خان د دې واقعې نه خبر شو او
ه دؤ دؤ راغـے او درې واړه وروڼـه ئې خبـر كـړل. مـگـر وړومبے د دې نه چې هغوي د خپل
ـلاصي څـه تـجـويـز كـړے وے د كامران د فوځ دسته د چار باغ د محل غولي ته رانوتله.
ـس تيښتـه خـو نـامـمكنه وه ځكه چې د وتو په ټولو لارو كښې هغوي سپاهيان ودرولي وو.
ـس هغوي فيصله وكړه چې اوس په زور او جنگ به وتل كيږي. هغوي سره دا وخت صرف
وه نـوكـران وو او چـونـكې پوردل خان ناجوړه وه په دې وجه هغه دې نوكرانو يو بل كور ته
اړولـو. بيـا شيـردل خـان تـوره پـه لاس، او كـنـدل خـان چـاړه پـه لاس په داسې تيزۍ او په
ستقـلال باندې په سپاهيانو راپريوتل چې د كامران ټولو سپاهيانو تيښته وكړه. او دوئ خپل
ځور ورور پوردل خان ځان سره كړو او د نورو كورونو په لارو باندې خپل د استوگنې كور
ه ور ورسيدل. هغلته هغوي خپل ځان په ښه شان سره مسلح كړو او سره د يو څو نوكرانو په
ـونـو سـوارۀ د كوره ووتل. مگر د ښار ټولې دروازې د كامران سپاهيانو بندې كړې وے او
ـاهيـان پـرې ولاړ وو. شيـردل خـان اوكـندل خان سره د خپلو سړو په دې سپاهيانو حمله
كـړه او ځـانـونه ئې د ښار نه وويستل. مگر د پوردل خان اس د هغۀ د لاندې زخمي شو او مړ
ـو او چونكې دې ناچاقه هم وه په دې وجه هغه د كامران سپاهيانو ونيولو. او بيا دولسو تنو د
غۀ متې وتړلې او تړلے ئې كامران له بوتلو. كامران چې څۀ وخت خبر شو چې شيردل خان او
ـنـدل خـان ژوندي وتـښتيدل نو پوردل خان له ئې ډيره طبع تسلي وركړه. د دې دپاره نه چې
ـنـي هغـه په خپل كار پښيمانه شو بلكې د دې دپاره چې د پوردل خان په ذريعه به زۀ دا نور
رونه گرفتار كړم. بيا هغۀ پوردل خان بنديوان كړو. او جيلخانه كښې ئې واچولو. دې نه پس
ـامـران څـۀ مـوده هـرات كښې پاتې شو او د كندل خان او د شيردل خان په گرفتارۍ پسې
دهار ته روان شو.

شيـردل خـان او كندل خان چې د هرات نه ووتل نو د گرشک نه درويشت ميله لرې
ـندري پـه كـلـي كـښـې ئې ځان پټ كړو. دا كلے د ادے د فتح خان د مور وه. د هغه ځاے نه
ـغوي د باركزو كوچي قبائلو ته د بغاوت وچتولو دپاره سوال جواب وكړو. د باركزو د تپې
شـانـه اولس د هغوي په دې سوال باندې راټول شول او چونكې هغوي د پښتنو په قام كښې
ر د رسوخ او اثر خاوندان وو په دې سبب د كامران د فوځ نه هم ډير خلق د هغوي لښكر ته

راوتښتېدل. هرڅومره چې کامران د شېردل خان او کندل خان د ګرفتارۍ دپاره لښکرې راوستلې مګر د فتح خان د نوم او عزت په وجه به د اولس خلق په هغوي راپرېوتل او هغوي به ئې د خپلې علاقې نه وشړل. چې په دې کار ونهٔ شو نو کامران دا فکر وکړو چې دا دواړه ورونه په څهٔ چل فرېب نیول پکار دي. پس هغهٔ پوردل خان ته دا طمع ورمخکښې کړه چې د فتح خان سترګې ما صرف په دې وجه ایستې دي چې تا وزیر کړم. بیا ئې هغه د جیلخانې نه راوویستلو او د سردار خطاب ئې ورله ورکړو. خلعتونه ئې ورله ورکړل او ورته ئې ووئیل چې څهٔ وخت شیردل خان او کندل خان زما اطاعت قبول کړي نو هغه ساعت به زهٔ تا وزیر کړم نو ښه به دا وي چې تهٔ هغوي ته ولیکې چې سمدستي ماله قندهار ته راشي او دبغاوت نه لاس واخلي.

پوردل خان هم په ډېرې چالاکۍ او هوښیارتیا سره کامران ته دا شان جوابونه ورکړل چې د کامران خاص یقین وشو چې پوردل خان زما په دام کښې ونښتو او زما تجویزونه ئې منظور کړل. پوردل خان په خپلې وفادارۍ باندې د کامران پوره اعتبار راوستو او د هغهٔ د احساناتو ئې ډېره شکریه ادا کړه. مګر په زړهٔ کښې هغه د دې بد طینته انسان په چل باندې پوهه وهٔ نو د ازادېدلو نه دوه ورځې پس خپلو ورونو له ندرۍ ته وتښتېدو. پوردل خان په حقیقت کښې په قبائلو کښې ډېر زیات برکتي وهٔ او د هغهٔ د قید په وجه د شیردل خان او د کندل خان کوششونو لا څهٔ ډېره ښه کامیابي نهٔ وه حاصله کړې مګر څهٔ وخت چې پوردل خان راورسېدو نو د شیردل خان او کندل خان په کوششونو کښې نوے جوش پیدا شو او د هغهٔ په صحیح سالم رارسېدو باندې بې حده ډېرې خوشحالۍ وشوې.

کامران چې د پوردل خان د تېښتې نه خبر شو نو د هغهٔ د غم او د غصې څهٔ اندازه پاتې نشوه. او خپل قهر ئې په پوره بزدلۍ او په بې غیرتۍ سره د بې وسه فتح خان نه وویستو. او هزار ها قسمه تکلیفونه او عذابونه ئې هغهٔ له ورکړل. فتح خان سره د دې ناروا سلوک په دوران کښې د هغهٔ یو ځل دا شک پیدا شو چې د فتح خان په سترګو کښې چرته څهٔ نظر نهٔ وي پاتې نو هغهٔ پخپل لاس یو سور کړے سیخ د هغهٔ په سترګو کښې ووهلو. او ټولې سترګې ئې ورله بالکل وسېزلې. هم په دې حالت کښې کامران بیا هغه غزني ته په زنځیرونو کښې تړلے بوتلو. غزني کښې شاه محمود د هغهٔ په انتظار کښې ناست وهٔ فتح خان ورته پیش کړې شو ولې فتح خان دې بدکار بدمعاش او ناشکرګزار بادشاه نه هیڅ قسم د رحم سوال ونکړو. په دې موقع باندې د سردار فتح خان د مزاج د استقلال، د بهادرۍ او د صبر مثال د تاریخ په صفحو کښې موندل ګران دي. فیرېر وائي :

"It was in this condition that the butcher dragged him to Ghazni, where the Shah Mahmood awaited him but his courageous minister never asked for mercy and by his firm and resigned bearing showed himself as great in adversity as he had

been generous in the exercise of his power."

ژباړه : " چې دې بهادر وزير د بادشاه نه د هيڅ قسم مهرباني سوال ونۀ کړو او هغۀ په خپل استقلال او په صبر باندې خپل ځان د مصيبت په وخت کښې هم دومره لوے ثابت کړو لکه څومره چې هغۀ خپل د اقتدار او د طاقت په وخت کښې فياض او د لوے زړۀ خاوند ثابت کړے وۀ."

په فتح خان باندې د دې ظلمونو په وجه نۀ صرف د هغۀ په ورونړو کښې د شاه محمود او د هغۀ د خاندان برخلاف سخت نفرت او ناراضګي پيدا شوه بلکې په ټول افغانستان کښې د دې ناشکرګزاره بادشاه او د هغۀ د بدعمله او بدکرداره زوي برخلاف يو سخت هيجان پيدا شو. د سردار فتح خان د ورونړو په زړۀ کښې فوراً د بدل اخستو يوه حيرت انګيزه جذبه لکه د اور هسې مشتعله شوه. سردار فتح خان دوۍ نولس ورونړه ژوندي وو. ټول ښۀ لائق او قابل وو او په مخلتفو علاقو کښې هغوي ډير اثر او رسوخ لرلو. د هغوي نومونه دا دي :

(۱)وزير فتح خان (۲) محمد عظيم خان (۳) تيمور خان د يوې نصرت خيلې مور نه وو. (۴) پوردل خان (۵) شيردل خان (۶) کندل خان (۷) رحمدل خان (۸) او ميردل خان د بلې مور نه وو. (۹) دوست محمد خان (۱۰) امير محمد خان (۱۱) او جمال خان د بلې مور نه۔ (۱۲) سلطان محمد خان (۱۳) يار محمد خان (۱۴) پير محمد خان (۱۵) سيد محمد خان د بلې مور نه. (۱۶) نواب اسد خان (۱۷) نواب صمد خان (۱۸) نواب جبار خان د بلې مور نه وو. (۱۹) او جمعه خان د وينزې زوے وۀ.

د فتح خان نه پس محمد عظيم خان د سردار پائنده خان په زامنو کښې مشر وۀ او په دې ورځو کښې هغه د کشمير ګورنر وۀ. دوست محمد خان په کشمير کښې هغۀ سره قيد وۀ. د هغۀ د قيد وجه هم دا وه چې څۀ وخت هغۀ او سردار فتح خان د هرات په مهم باندې تللي وو نو دوست محمد خان لکه څرنګ چې وړومبے ذکر شوے دے د حاجي فيروزالدين د کور په لوټ کښې د هغۀ د اينګور د جامو نه قيمتي قيمتي جواهرات شوکولي وو. فتح خان په دې د هغۀ نه سخت ناراض شو او فوراً ئې د هغۀ نه جواهرات واپس وغوښتل مګر دوست محمد خان د ځوانۍ د جوش او د نا تجربه کارۍ په وجه د جواهراتو د واپس کولو نه انکار وکړو. په دې د سردار فتح خان او د هغۀ په منځکښې ناچاقي او زړۀ بداوے پيدا شو. او دوست محمد خان د خپل ورور د ويرې نه د هرات نه پټ شو او کشمير ته د محمد عظيم خان څخه لاړو خو هلته محمد عظيم خان هم هغۀ ته ووې چې جواهرات فوراً فتح خان ته واپس کړه مګر دوست محمد خان هغۀ ته هم انکار وکړو. او په دې وجه هغۀ دوست محمد خان ګرفتار کړو. څۀ وخت چې محمد عظيم خان ته د فتح خان د سترګو وتو واقعه معلومه شوه نو هغۀ دوست محمد خان د قيدخانې نه راوويستو او دواړو يو ځاے په کشمير کښې د

بغاوت نشان وچت کړو. چونکې محمد عظیم خان پخپله ناجوړه وۀ هغۀ د خپل ځان نه ورانديې دوست محمد خان سره د يو څو تنو سرو کابل ته په دې غرض راولیږلو چې د کابل خلق د شاه محمود برخلاف راوچت کړي. دوست محمد خان ډیر بهادر او زړور سړے وۀ. او په ډیرو جنګونو کښې هغۀ د دې ثبوت ورکړے وۀ. دوست محمد خان ته دا هم معلومه شوه چې فتح خان زمونږ مشر ورور ته چې څۀ نقصان رسيدلے دے نو هغه زما د ناتجربه کارۍ او د غلطۍ په سبب رسیدلے دے. پس هغۀ خپل ذاتي شکایتونه او ګیلې شاته وغورځولې او د خپل خاندان د عزت ساتلو او د ورور د بدل اخستلو دپاره ئ جوخته ملا وتړله. او په کمال جرأت او دلیرۍ سره يو څو تنو سړو سره په کابل باندې ورغے. شاه محمود ته په لږه موده کښې معلومه شوه چې چارچاپیره ټول ملک د سردار فتح خان د واقعې په وجه ماته بلوه دے. د ډیرې مودې نه هغۀ د جنګ د کاروبار او د ملک د سیاسیاتو نه بالکل بې خبره وۀ نو هر کله چې هغۀ په مختلفو صوبو کښې د بغاوتونو نه خبر شو نو کابل کښې ئ خپل نمسے جهانګیر چې د کامران زوے وۀ پخپل ځاے پریښودو او عطا محمد خان پوپلزے ئ د هغۀ وزیر مقرر کړو. او پخپله د غزني قلعې ته وتښتیدو. د هغه ځاے نه ئ کامران ته ولیکل چې په غزني کښې ما سره شامل شه. د دوست محمد خان مقابلې ته جهانګیر څۀ فوځونه راواستول مګر دوست محمد خان هغوي له شکست ورکړو. جهانګیر وتښتیدو او دوست محمد خان کابل واخستو او عطا محمد خان ئ ګرفتار کړو او بازار کښې ئ د هغۀ نه سترګې وویستې. جهانګیر سره د يو څو کسو سړو چې هغۀ سره د کابل نه تښتیدلي وو غزني کښې خپل نیکۀ سره يو ځاے شو او يو څو ورځې پس کامران هم سره د فوځونو غزني کښې د هغوي سره شامل شو.

د يو څو ورځو د قیام نه پس کامران کابل ته د دوست محمد خان مقابلې دپاره روان شو. مګر په دې اثنا کښې محمد عظیم خان جوړ شوے وۀ. هغه د دوست محمد خان امداد له راورسیدو. محمد عظیم خان څلور زرو سړو سره د غزني او د کابل په منځکښې په يو مقام باندې د کامران فوځونو سره مقابل شو. کامران سره دولس زره فوځ وۀ او د محمد عظیم خان په شکست کښې هغۀ هیڅ شک نۀ ګڼلو او ډیر په خوشحالۍ سره ئ د سباني جنګ انتظار کولو. مګر خبر نۀ وۀ چې فوځ د سردار فتح خان سره د ناروا سلوک او د ظلم په وجه د سدوزو نه اوریدلے دے. چنانچه شپه په شپه ټول فوځ دوست محمد خان او محمد عظیم خان سره شامل شو. کامران مجبوراً د میدان نه وتښتیدو او هیله په غزني کښې ئ ساه واخسته. شاه محمود په دې شکست ډیر نااميده شو چنانچه هغه فتح خان چې کامران ځان سره بندیوان راوستے وۀ او په ړندو سترګو ځان ته پیش کړو او ورته ئ ووئیل چې د خپلو وروڼو په نوم خطونه ولیکه چې هغوي بغاوت نۀ کوي او زما اطاعت قبول کړي. مګر دې

بهادر وزیر پــه ډیــر سکون او دلجمعی سره بادشاه ته وئیل چې زهٔ اوس ړوند یم او د ستر ګو ړنـدیـدو پـه وجـه پـه خـلقو باندې نهٔ زما څهٔ اثر پاتې شوے دے او نهٔ هغوي سره څهٔ تعلق. زما اوس د دنیـا د کارونو سره هیڅ غرض نشته. بادشاه په دې ایغ نیغ جواب په طیش کښې راغے او د فتـح خان د قتل حکم ئې وکړو. او خپل هغه سرداران ئې د دې حکم په تعمیل باندې مقرر کـړل. چې څـوک د سردار فتح خان حاسدان او دشمنان وو. کامران چې د سدوزو په قبیله کښې د هغهٔ نه زیات بدکاره او ظالم سړے نهٔ وهٔ هغهٔ وړومبے په سردار فتح خان ګوزار وکړو. د دې نـه پـس بیـا نـورو سـردارانو چړې راواخستې او قسماقسم تکلیفونه او عذابونه ئې ورله ورکـړل. هغوي وړومبے د هغهٔ نه په ژوندانهٔ څرمن وویسته او بیا ئې تړې یو یو اندام پریکړو او پـه اخـر کښـې ئې سر قلم کړو او په دغه شان ئې د هغهٔ د تکلیفونو او عذابونو خاتمه وکړه. بیا ئې د هغهٔ نعش جلاد ته حواله کړو. هغهٔ هغه ټوکړې ټوکړې کړو او په بوجۍ کښې ئې واچولو او په غزني کښې ئې دننه ښخ کړو. د فتح خان د قتل واقعه په کال 1818ء کښې وشوه. فیریر وائي چې :

" Not a sigh or complaint escaped Fateh Khan amidst these horrible tortures, he was sustained by the courage of a hero and a calm of a pure conscience."

ترجمه : ''په دې ټول وخت کښې د دې هولناک دردونو او عذابونو په دوران کښې د سردار فتح خان د خلې نه اُف قدرې ونهٔ ختلو او نهٔ ئې څهٔ فریاد یا واویلا وکړه بلکې د هغهٔ پاک ضمیر تسکین او بې مثله جرأت هغهٔ له کمال ثابت قدمي ورکړه. او سر جان کے لیکي چې :

The ex minister was brought into their presence, and again called upon to write to his brothers ordering them to surrender themselves to the Shah. Again he refused alleging that he was but a poor blind captive; that his carrier was run, that he had no longer any influence; and that he could not consent to betray his brethern. Exasperated by the resolute bearing of his prisoner, Mahmood Shah ordered the unfortunated minister the king maker to whom he owed his crown to be put to death before him and there, in the presence of feeble father and the cruel son, Fateh Khan was by the attendant courtiers literally hacked to pieces. His nose, ears and lips were cut off; his finger severed from his hands his hands from his arms, his arms from his body. Limb followed , and long was the horried butchery continued before the life of the victim was extinct. Fateh Khan raised no cry, offered no prayer for mercy. His fortitude was unshaken to the last. He died as he had lived, the bravest and most resolute of mind like his noble father a victim to the perfidy and ingratitude of princes. The murder of Painda Khan shook the Sadozais dynasty to its base. The assassination of Fateh Khan soon made it a heap of ruins."

تـرجـمـه : ''سابق وزیر بیا د هغوي په مخکښې پیش کړې شو یعنې د شاه محمود او د کامران پـه مـخکښې بادشاه ورته دوباره حکم وکړو چې خپلو ورونو ته خطونه ولیکه چې هغوي ماته

ځان حواله کړي هغهٔ د خط د ليکلو نه بيا انکار وکړو. او ورته ئ ووئيل چې زهٔ اوس يو غريب ړوند قيدي د دنيا د لوبو وتے سړے يم او د هيڅ اثر رسوخ خاوند باقي پاتې شوے نهٔ يم او نهٔ زهٔ د خپلو وروڼو سره فريب کولے شم. شاه محمود د خپل قيدي په دې کلک جواب باندې د اور لمبه شو او حکم ئ وکړو چې دا بدنصيب وزير چې په يوه زمانه کښې ئ بادشاهان جوړول او دې ئ هم بادشاه کړے وهٔ زما په موجودګۍ کښې قتل کړئ. نو هم په دغه ځاے دې کمزوري پلار او د هغهٔ د ظالم زوي په وړاندې درباريانو فتح خان اندام اندام کړو. وړومبے ئ د هغهٔ نه پوزه، غوږونه او د سونډې پريکړې بيا د هغهٔ د لاسونو نه ګوتې، او د بازوګانو نه ئ ليچې او د تن ئ بازوګان پريکړل. بيا ئ هغه يو يو اندام کړو او د ساه د وتو پورې ئ د هغهٔ سره وړده او دردناکه قصابي وکړه. فتح خان نهٔ خو څهٔ چغه وريسته او نهٔ ئ د رحم دپاره سوال وکړو. د هغهٔ استقلال تر اخره پورې غير متزلزل پاتې شو. هغهٔ د خپل شريف پلار پشان د مرګ په حالت کښې هم دغه شان بهادر او مستقل مزاج پاتې شو لکه څرنګ چې په ژوندوني وو او پلار او زوے دواړه د بادشاهانو د ناشکرۍ او بې ايمانۍ ښکار شول. د پائنده خان قتل د سدوزو د خاندان بيخ شړقولے وهٔ ولې د فتح خان قتل د هغوي سلطنت د تورو خاورو ډيرے کړو."

د فتح خان په داسې بې دردۍ قتليدلو د افغانستان د يو سر نه تر بله سره پورې د بادشاه او د هغهٔ د زوي برخلاف د خفګان يو اور بل کړو. او کومو خلقو چې لاتراوسه پورې د سدوزو قدر د احمد شاه او د تيمور شاه په سبب کولو هغوي هم اوس د دوئ نه متنفر شول او د هغوي پره ئ پريښوده. د بادشاه په خپلو ذاتي دوستانو کښې هم ډير کم سرداران داسې پاتې شول چې ګني د هغوي په زړونو باندې د دې وفادار وزير د افسوسناک قتل اثر ونهٔ شو. د سردار فتح خان په قتل باندې چارچاپيره په علاقو کښې ماتمونه او ژړاګانې وشوې. او حقيقت دا دے چې د هغهٔ مرګ د افغانستان او د پښتنو دپاره د هغې مصيبتونو پيش خيمه وه چې کوم د هغوي په ملک او سلطنت باندې د سکهانو د ايرانيانو او د نورو قومونو د لاسه نازل شول. د هغهٔ په مرګ د پښتنو په اميدونو باندې د هميش دپاره يخې اوبهٔ توئ شوې او هغوي د ژوندو قامونو په صف کښې د ودريدو نه لاس ووينځل. د هغې نه پس د افغانستان په وسيع سلطنت باندې د هر طرف نه چپاوونه او حملې شروع شوې. په کوم حسن او انتظام او په کوم ضبط سره چې هغهٔ د افغانستان مفتوحه صوبه جات د سلطنت دننه په قابو کښې ساتلي وو هغه د هغهٔ شهادت سره ختم شول. وړومبے ترينه کشمير لاړو بيا ترينه سندهـ واخستې شو او بيا د پښتنو خپله علاقه د دريائے سندهـ نه قبلې ته عين تر جمروده پورې لاړه. د هغې نه پس د پښتنو ملک د بر سوات نه تر باجوړه او د باجوړ نه تر شال او د قلات تر غرونو پورې کوهستاني او ميداني علاقه د قبضې نه ووتله.

لکه څرنګ چې وړومبې ذکر شوې دې هر کله چې کامران د دوست محمد خان او د محمد عظیم خان د مقابلې نه غزني ته په تیښته راغې او دلته کښې ئې سردار فتح خان قتل کړو نو په داسې حالاتو کښې دوئ په غزني کښې هم تینګ نشول او وتښتیدل. شاه محمود او کامران د غزني د تیښتې نه پس اواره او تباه حال د یو څو تنو سره په ورانو ویجاړو باندې سر شول او کوشش ئې د ځان د پټولو کولو. د هر لوري نه د هغۀ په نیولو پسې سړي روان شوي وو. او کوم ځاے کښې چې به د هغۀ د رسیدو خبر ورسیدلو نو فوځونه به ورپسې شول په ابادۍ کښې د هغۀ دپاره اوس پاتې کیدل یا وسیدل ناممکن شول. خرڅ خوراک هغه سره ختم شو او د ځنګل په پاڼو او جرړو باندې به ئې ګزاره کوله. د لوږو او ستومانو نه چې مجبور شو نو د قندهار په لوري روان شو کامران د دې ځاے حکومت ګل محمد خان پوپلزي ته حواله کړے وۀ مګر هغۀ ته معلومه شوه چې هغه علاقه هم د میر افضل خان اسحاقزي په امداد د بارکزو په لاس راغلې ده. دا میر افضل خان په هرات باندې د قبضه کولو په ورځو کښې د حاجي فیروز الدین سره وزیر اعظم وۀ. مګر د فتح خان د ویرې نه هغه ایران ته وتښتیدو او څۀ وخت چې کامران فتح خان ګرفتار کړو او ړوند ئې کړو نو میر افضل خان د ایران نه خپلې قبیلې ته راغې او په کوه نشین نومې قلعه کښې چې د هلمند په غاړه باندې پرته وه اباد شو. پوردل خان د میر افضل خان د زوړ رنجش څۀ پروا ونۀ کړه او په ننواتې د هغۀ نه د کومک غوښتو په غرض ورغې. میر افضل خان د پښتنو په رواج د دې ننواتې نه مخ نشو اړولے. د دې کبله هغۀ خپله ټوله قبیله د پوردل خان په طرف کړه. پس د هغې بیا دوئ دواړه په قندهار ورغلل او د یو معمولي مقابلې نه پس ئې په قندهار قبضه وکړه. ګورنر ګل محمد خان هرات ته وتښتیدو. په هرات کښې د کامران د فوځ څۀ حصه د وړومبې نه په قلعه کښې پرته وه پس ګل محمد خان د هرات انتظام پخپل لاس کښې واخستو او د شاه محمود او د کامران په انتظار کښې کښیناستو. شاه محمود چې د دې واقعاتو نه خبر شو نو د هرات په لور ئې مخه وکړه او د سختو مشکلاتو او تکلیفونو نه پس د کوه سفید کوه بابا او د کوه سیاه د غرونو په ګرانو لارو باندې لوږو او تندو وهلے هرات ته ورسیدو. هغۀ سره یو کامران او خپل ورور حاجي فیروزالدین او یولس نوکران وو.

د سردار فتح خان د مرګ ازار په هرات کښې هم په دې درې واړو پسې شو چنانچه څۀ وخت چې دوئ هرات ته ورسیدل نو دې درې واړو کښې د هرات د حکومت پحقله سخته بې اتفاقي پیدا شوه. کامران خو فتح خان ځکه ورکولو چې د حکومت واګې پخپل لاس کښې واخلي پس د هرات د صوبې اختیارات فوراً هغۀ قبضه کړل. شاه محمود ووئیل چې زۀ د کامران پلار یم د تاج و تخت اصلي وارث زۀ یم. زما په ژوندون کښې کامران د حکومت واګې څرنګ په خپل لاس کښې اخستې شي پس هغۀ د کامران نه د اختیاراتو

شو کولو په کوشش کښې ولګیدو او د دې دواړو په منځکښې سخته ناراضګي پیدا شوه.
حاجي فیروزالدین چې وکتل چې د هرات په حکومت باندې د پلار او د زوي په منځکښې تنازعه پیدا شوه نو هغه په زړهٔ کښې تنګ شو او د مشهد د تلو اجازت ئې واخستو.

څهٔ وخت چې ایرانیانو ولیدل چې د پښتنو په منځکښې خانه جنګي بیا د نوي سر نه راپیدا شوې نو هغوي په هرات باندې د حملې کولو تیاری شروع کړې. مګر چونکې شاه محمود او کامران د کورنۍ په دې جګړو کښې د ایرانیانو د مقابلې طاقت نهٔ لرلو ، هغوي د شاه ایران باجګزاري فوراً تسلیم کړه او د سالانه خراج د ادا کولو عهدوپیمان ئې هغهٔ سره وکړو. په 1819ء کښې شاه ایران سره د دې عهدوپیمان نه څهٔ لږه موده پس کامران د شاه محمود د هرات په حکومت کښې د هر وخت دخل مداخلت ورکولو نه تنګ شو او اخر ئې خپل پلار د هرات نه وشړلو. شاه محمود د ایماک قبیلې یو لښکر سره د هرات محاصره وکړه مګر کال 1820ء کښې هغهٔ شکست وخوړو. او د هزاره قبیلې په ملک کښې شړونے شو. مګر په کال 1821ء کښې هغهٔ بیا څهٔ خلق راجمع کړل او چې دویم ځل ئې بیا د هرات محاصره وکړه نو د څهٔ مودې د محاصرې نه پس د هرات سردارانو د پلار او زوي په منځکښې راضي نامه وکړه. په دې شرط باندې چې شاه محمود به د هرات بادشاه ګڼلے شي او اختیارات به ټول د کامران په لاس کښې وي. هرکله چې دا جګړې د هرات په علاقه کښې روانې وې نو د افغانستان په باقي حصو باندې په څهٔ خو بارکزو سردارانو قبضه وکړه او په څهٔ سکهانو او چونکې بارکزي د سکهانو سره په جنګونو کښې ونښتل په دې وجه هغوي هرات ته توجه ونهٔ کړې شوه.

څهٔ وخت چې د شاه محمود او د کامران په منځکښې راضي نامه وشوه نو د حاجي فیروزالدین زړهٔ کښې دا خیال وچت شو او دا خیال د هغهٔ زړهٔ کښې هم هغې سردار کالج خان تیموني اچولے وهٔ کوم چې د سردار فتح خان په هرات باندې د قبضې کولو په وخت ایراني فوځ ته تښتیدلے وهٔ. چې ما خو په هرات باندې په ډیره اعلیٰ پیمانه باندې قریباً شپاړس کاله حکومت کړے وهٔ او قریب وه چې خلقو زهٔ بادشاه کړے وے. او اوس هم شاید چې د شاه محمود او د کامران مقابله کښې خلق زما په حکومت زیات رضا وي. له دې کبله په هرات باندې حکومت خو زما پکار دے. د دې مهم په سر کولو کښې هغهٔ سره سردار کالج خان هم د امداد لوظ وکړو او د ښهٔ غور وحوض نه پس هغهٔ په هرات باندې د حملې کولو فیصله وکړه. او کالج خان د هر قسم جنګي تیاری وکړې. اخر کار دوئ یو لوے لښکر په کال 1822ء کښې راجمع کړو، حاجي فیروزالدین او کالج خان د دې حملې تجویز دومره پټ ساتلے وهٔ چې نهٔ ترې شاه محمود خبر وهٔ او نهٔ د هغهٔ زوے کامران. بلکې کامران د کسان نومے کلي په خوا کښې چې د هرات نه قریباً د پنځلسو ګینټو په مزل پروت دے ښکار کولو

چې ناساپه د حاجي فیروزالدین د لښکر هراول ټولګے پرې راپریوتلو. او قریب وه چې هغه ئ ګرفتار کړے وے مګر د هغهٔ څلورو نوکرانو هغه په ډیره بهادرۍ سره په دې طریقه بچ کړو چې هغوي د کامران د ځاے په دروازه کښې ودریدل او کامران د شا د طرف نه په دیوال واوړیدو او وتښتیدو. کامران چې هرات ته ورسیدو نو فوراً ئ په چار چاپیره علاقو کښې سرې د لښکر راجمع کولو دپاره واستول. چنانچه ډیر زر هغهٔ یو لښکر راجمع کړو او د هرات تحفظات ئ مستحکم کړل. یو ډیر خونریز جنګ د هرات د ښار نه بهر د دوارو فوځونو په منځکښې وشو. عطا خان علي کوزے د کامران د فوځ جرنیل وهٔ. هغهٔ د حاجي فیروزالدین په لښکر باندې د مخامخ نه او کامران د دوؤ زرو سرو سره د هغهٔ په شا باندې حمله وکړه. دیارلس ګینټې لاس په لاس د تورو او چړو جنګ وشو.

فیریر وائي چې د دې نه سخت خونریز جنګ وړومبے د هرات په مقام باندې نهٔ وهٔ شوے. څهٔ وخت چې جنګ خلاص شو نو د ژوندو نه پکښې مړي زیات وو. اخر د دیارلسو ګینټو د جنګ نه پس چې لا د فتح او شکست څهٔ حال معلوم نهٔ وهٔ چې سردار کالج خان مړ شو. سردار کالج خان په دغه وخت کامران طرف ته هغهٔ سره د طاقت ازمایی دپاره په ډیر جوش سره راروان وهٔ او په لږ ساعت کښې به هغهٔ سره مقابل شوے وهٔ مګر د بدقسمتی نه د هغهٔ اس په یوه کنده کښې پریوتو او د کالج خان څټ مات شو. او کامران فوراً هغه قتل کړو. د هغهٔ لښکر بیا وتښتیدو او حاجي فیروزالدین ګرفتار کړې شو. کامران حاجي فیروزالدین هم قتلولو مګر شاه محمود په ډیر منت باندې خپل وررور د هغهٔ د پنجې نه خلاص کړو. بیا کامران هغه په قلعه کښې بندیوان کړو. د دې نه پس د فتح علي شاه، شاه ایران په ترغیب او لمسه باندې د خراسان خانانو په شریکه په کال 1823ء کښې په هرات باندې متعددې حملې وکړې. د دې حملو وجه دا وه چې کامران ایران ته د سالانه خراج په ورکولو کښې د ډیرې مودې نه داسې ټال متهول کولو. قریباً تر دریو میاشتو پورې دا جنګونه جاري وو او اخر کامران د یو معمولي رقم په ادائیګۍ ځان د ایران د بادشاه نه خلاص کړو.

د دې نه پس د افغانستان په ټول ملک کښې کهٔ هغه د بارکزو په قبضه کښې وهٔ او کهٔ د سدوزو په لاس کښې وهٔ دا قسم خانه جنګۍ او بغاوتونه رادوځاره شول چې د هغې بیانول د یو غیرتي قوم دپاره باعث ننګ و عار دے او مونږ به دومره وړد تفصیل د هغې په دې موقع نهٔ رهٔ کړے مګر چونکې د تاریخ اصل غرض به بالکل فوت شي. کهٔ چرې مونږ د پښتنو د زوال اصلي اسباب او د پښتنو د دنیا د قومونو کښې ذلیل کیدلو او د بې عزته کیدلو وجوهات په ښهٔ شان سره ونهٔ لټوؤ. د دې دپاره ناظرین به امید دے چې په ډیر صبر دا درد انګیز داستان د زړهٔ په سترګو ولولي. او بیا به په دې فکر وکړي چې ولې اوس هم د پښتنو قوم هم د دې خانه جنګو، بې اتفاقو د حسد د بغض او پرو جنبو په مرض کښې مبتلا نهٔ دے؟

او هم د دې نامرادو بیمارو د لاسه د هغوي سیاسي جسم باندې د نري رنځ یو داسې چینجے لګیدلے دے چې د هغهٔ د بدن نه ئ ټوله وینه وڅښله. او اوس هغه د زنکدن سلګو ته نزدې شوے دے. هر کله چې د دنیا نورو قومونو خپلې کورنۍ ورانې بالکل ورانې کړې دي او په خپل خپل ملک کښې ئ تنظیم او یو والے پیدا کړو او د ترقۍ بام ته ورسیدل. نو زمونږ په قومي خصلت کښې د اتلسمې صدۍ د اخر نه تر دې وخته پورې هیڅ فرق رانغے. کوم بغض او حسد پره او جنبه چې د شاه زمان د شاه شجاع او شاه محمود په وختو کښې موجود وه او کومه خودغرضي او د ذاتي لوي والي شوق چې د پښتنو په سردارانو کښې په هغه زمانه کښې موجود وۀ هغه اوس هم په مونږ کښې اووۀ اتۀ شلې کاله پس ظاهره باهره شته. د قوم او د وطن محبت چې د یو مهذب قوم د خلقو لازمي خوئ خصلت وي او بغير د هغې د موجودګۍ نه دا ممکنه نۀ ده چې یو قام ژوندے پاتې شي. هغه په مونږ کښې نۀ د شاه زمان په وخت کښې پاتې شوے وۀ او نۀ اوس شته. هر یو سړے د خپل ذاتي لوي والي دپاره قومي مفاد هم هغه شان داسې بې پروايۍ سره قربانوي لکه چې څۀ رنګ اووۀ اتۀ شلې کاله وړومبے ئ قربانول. او په دې کوشش کښې نۀ هغه یوائې قومي مفادو ته نقصان رسوي بلکې د ذاتي لوي والي په حاصلولو کښې هم بالکل ناکام شي. په دې وجوهاتو مونږ د ناظرينو د پوهې دپاره د هغه زمانې تاريخې واقعات لږ په تفصيل سره درج کوؤ.

کامران لا د خراسان د خانانو د جګړو نه خلاص شوے نۀ وۀ چې هغۀ ته د هرات په صوبه کښې دننه د هغۀ د بدانتظامۍ په وجه فسادونه ورپيښ شول. په1824 ء د فراه د علاقې خلقو خان د هرات د حکومت نه جدا کړو او د قندهار د حکومت ماتحتي ئ اختيار کړه. په دې کامران مجبور شو چې د دغه خلقو د رعيت کولو د پاره سره د لښکره لاړ شي. چنانچه هغۀ د قلعې د فوځ مشري مصطفيٰ خان نومے یو سړي له ورکړه. او محمد حسين خان خپل ماما ئ د ښار ګورنر کړو او د وکيل خطاب ئ ورله ورکړو. د انتظام ټول اختيارات ئ دې دواړو ته حواله کړل. او خپل زوے جهانګير ئ په خپل ځاے قائم مقام کړو. شاه محمود د ښار نه بهر د بادشاه په محل کښې سکونت اختيار کړو او په سپينه ږيره ئ بغير د شراب نوشۍ او د نور عيش عشرت نه خو بل هډو څۀ کار نۀ وۀ. وکيل محمد حسين خان په ښار دننه ډير اثر او اقتدار لرلو او دغه شان فوځ کښې د مصطفيٰ خان. وړومبے خو د دې دواړو سردارانو په خپلو کښې سره ښۀ اتفاق وۀ او د ټولو معاملو فيصلې به ئ سره په صلاح مشوره کولې مګر څۀ موده پس هر یو د خپلو اختياراتو د زياتولو کوشش شروع کړو او اخر د خپل خان د بادشاه کيدو ارادې ئ وکړې.

اتفاق سره په دې ورځو کښې د فراه نه د کامران یو سړے د شپږو زرو تومان اخستو دپاره وکيل محمد حسين خان او مصطفيٰ خان له راغے. خبره دا وه چې څۀ وخت فراه ته

ورسیدل نو هغوي د کامران نه د خپلو تنخواګانو مطالبه وکړه چونکې خزانه فوځ سره نهٔ وه د دې دپاره کامران ماولي خان نومے خپل نوکر هرات ته د دې روپو راوړو دپاره ولیږلو. ماولي خـان چونکې د کامران سړے وۀ څۀ وخت چې هغه دې دواړو سردارانو ته مخامخ شو نو هغۀ څـۀ پـه داسـې قهـر او غـصه او رعب داب سره دا روپۍ وغوښتلې چې دواړه سرداران ناراضه شـول. وکیل محمد حسین خان ورته ووئیل چې دا رقم به یو څو ورځې پس تاته درکړې شي. ځکـه چې خزانه کښې في الحال روپۍ نشته. مګر ماولي خان په ډیرې ګستاخۍ سره د روپو مـطالبـه وکړه او څۀ ډیر بدرد ئې هغوي ته ووئیل. په دې باندې مصطفيٰ خان او وکیل محمد حسیـن خـان دواړه دومـره خـفه شول چې هغوي د دې خپلې بې عزتۍ برداشت ونۀ کړې شو ماولي خان ئې ګرفتار کړو او د کامران خلاف ئې بغاوت وکړو.

لـکـه څۀ رنګ چې وړومبے ذکر شوے دے چې د قوم د نقصان خو چاته قطعاً خیال نۀ وۀ. هـر یـو سـړي خپـل ذاتي لوے والے غوښتو. د خودغرضۍ او د خودمطلبۍ چرچه وه. دې دواړو سـردارانـو د کـامـران زوے جهـانـګیـر خـان ځان سره شامل کړو او په هغۀ باندې ئې د هرات د خلقو په نوم یو اعلان جاري کړو چې د کامران بادشاهي ختم شوه او زۀ اوس د هرات بـادشـاه شـوم. د جهـانـګیـر عـمـر په دې ورځو کښې قریباً درویشت کاله وۀ. او چونکې هغۀ پـخپلو سترګو باندې کامران لیدلے وۀ چې د خپل پلار شاه محمود نه ئې بادشاهي اخستې وه. هـغـۀ ته د کامران برخلاف بغاوت کښې هیڅ بدي ښکاره نشوه. دې نه پس هغۀ د ماولي خان د قتل حـکـم وکـړو. وړومبے ئې ترینه پوزه پریکړه بیا غوږونه او بیا ئې د تورو په ګوزارونو د هـغـۀ نـه غوښې وشوکولے. او دوه ورځې پس ئې سنګسار کړو. او په دا رنګ عذابونو د هغۀ ژوند ختم شو. خدائے به د دا شان ظالم قام انجام بغیر د تباهۍ نه بل څۀ کولو؟

هـر کله چې محمد حسین خان او مصطفيٰ خان په خپل بغاوت کښې کامیاب شول او جهـانـګیر ئې پلار سره دشمن کړو نو بیا هغوي دواړو جهانګیر ګرفتار کړو او ټول اختیارات ئې ځان لـه واخستل. اوس د محمد حسین خان او د مصطفيٰ خان په منځکښې د اختیاراتو په تـقسیـم جګـړه راوچتـه شـوه. چونکې د هرات قلعه د مصطفيٰ خان په قبضه کښې وه او ټول فـوځ او وسـله هم د هغۀ د لاندې وو پس محمد حسین خان، حاجي فیروزالدین د قید خانې نه ازاد کړو او بادشاه ئې کړو. مصطفيٰ خان محمود د باغ شاه نه راوستو او د حاجي فیروزالدین برخلاف ئې ودرولو. مصطفيٰ خان د قلعه نه د هرات په ښار ګوله باري شروع کړه او په یو څو ورځـو کښـې ئې ښـار واخستـو. حـاجي فیـروزالدین د اتلسو ورځو د حکومت نه پس سره د مـحـمـد حسیـن خـان مشهد ته وتښتیدو. د دې غوبل نه پس کامران د فراه نه هرات ته راغے مـګر مصطفيٰ خان د ښار دروازې هغۀ ته بندې کړې او کامران بیا واپس وتښتیدو. هم په دې ورځـو کښـې د سـردار فتح خـان ورور شیـردل خـان د قـنـدهار نه په هرات حمله وکړه مګر

ناکامیاب شو. څهٔ وخت چې مصطفيٰ خان د بیروني دشمنانو نه خلاص شو نو د هرات په دننه ښار کښې چې چا د هغهٔ مخالفت کړے وهٔ هغوي ئ ټول قتل کړل. او هر طرف ته ئ ظلم او زیاتے شروع کړو. څهٔ موده خو هراتیانو صبر وکړو مګر اخر د هغوي صبر تمام شو او کامران ته ئ سوال جواب ولیږلو چې تهٔ په هرات کښې یو ځل پټ رادننه شه نو مونږ به د مصطفيٰ خان برخلاف ستا ملګري شو. د دې سازش مشر سید میر صادق خان وهٔ. چنانچه کامران د یو څو سړو سره هرات ته د نیمې شپې راورسیدو او د سید میر صادق خان ځاے ته لاړو. شپه په شپه هغهٔ د هرات خلق د خپلو راتلو نه خبر کړل او سحر وختي قریباً لس زره خلق د مصطفيٰ خان د قلعې نه چارچاپیره پریوتل. مصطفيٰ خان بالکل بې خبره وهٔ مګر قلعه مضبوطه وه او د یو څو ورځو نه پس هغهٔ خپل ځان د مقابلې دپاره بالکل تیار کړو د یوې میاشتې قلعه بند کیدلو نه هغهٔ سردار دوست محمد خان پوپلزے کامران ته د صلح او د معافی غوښتلو دپاره ولیږلو. کامران د یو فقیر په همسا چې د هغهٔ خوا کښې پرته وه په هغهٔ راکښینولو دې.

مصطفيٰ خان تر نورو لسو ورځو پورې ډیره سخته مقابله وکړه مګر اخر قلعه فتح شوه. مصطفيٰ خان بندیوان شو او په یو ډیر دردناک عذاب باندې قتل کړې شو. وړومبے ئ د هغهٔ د بدن نه غوښې په تورو او سیخونو راوشوکولې او بیا ئ په تورو وخرپوۀ. بیا ئ ترې څرمن وویسته او یوې ونې پورې ئ وتړلو. د هرات خلقو د هغهٔ په مخ توکاڼي توکل. په اخر کښې ئ ورله ګیدړه وخیرله او د اووو ورځو د دردناک عذاب نه پس مړ شو. شاه محمود له کامران دا سزا ورکړه چې یوه میاشت ئ په هغهٔ شراب بند کړل. جهانګیر ته ئ نور څهٔ ونهٔ وئیل خو د پښو په تلو ئ ورله میخونه ووهل. فیریر وائي چې په دې خاندان کښې زړے، نمسے او نیکهٔ ټول د یو بل نه زیات وو او هر یو به د بل نه په بدکارئ او په جنګونو کښې خپل ځان مخکښې کولو.

د مصطفيٰ خان د مرګ نه پس د کامران په ژوند کښې داسې یو کال هم تیر نشو چې ګنې په هغهٔ کښې خانه جنګی، قتلونه او بغاوتونه نهٔ وو. کله به هغهٔ فاتح او کله به مفتوح وهٔ. د خپلو مخالفینو سره به د فتح نه پس هغهٔ ډیر د ظلم سلوک کولو. شوک به ئ د هاتیانو په پښو کښې چقولو او شوک به ئ زمرو ته غورځول. رحم او فیاضی سره هغه اشنا نهٔ وهٔ. او هیچرې هم هغهٔ خپل اشنا له معافي نهٔ وه ورکړې. نهٔ پوهیږم چې د هرات خلقو د داسې سړي حکومت په ځان باندې څرنګ قبول کړے وهٔ. تر څو پورې چې رائ عامه داسې ظالم او بې دینه انسان ته بد ونهٔ ګوري او یو ظالم بې انصافه سنګدله د ځان نه لرې نهٔ کړي تر هغې به ملک کښې د عدل او انصاف حکومت هیچرې هم قائم نشي. حقیقت دا دے چې د شخصي حکومت هم دغه نتیجه وي.

په 1829ء کښې شاه محمود پخپله غسل خانه کښې مړ بیاموندې شو. بعضې خلق وائي چې هغهٔ له خپل زوي زهر ورکړې وو او بعضې وائي چې د کامران په حکم باندې هغه په تیزندی قتل کړے شوے وهٔ. د پلار د مرګ نه پس کامران خان بادشاه کړو او لږه موده پس د هرات په قلعه کښې ئې سکونت اختیار کړو. په هغه ځاے کښې هغهٔ په شراب نوشی افیم خوری او په نور قسم قسم عیش و عشرت کښې مبتلا شو. د سلطنت د کارونو نه هغهٔ لاس په سر کړل او ټول اختیارات ئې سردار عطا خان علي کوزي ته چې د هغهٔ وزیر اعظم وهٔ حواله کړل. د هغهٔ په حسن انتظام باندې د هر قسم شورشونه د هرات په علاقه کښې بند شول او د هغهٔ تر ژوندانهٔ پورې د هرات په علاقه کښې امن و امان وهٔ. دا قابل وزیر په 1830ء کښې مړ شو او درې زامن ترینه پاتې شول. د هغهٔ د زمانې د رواج مطابق پکار وو چې د هغهٔ مشر زوے سردار دین محمد وزیر شوے وے مګر دا عهده هغهٔ د خپل ترهٔ زوي یار محمد خان ته پریښوده او هغه وزیر شو. دا یار محمد خان لا هلک وهٔ چې پلار ئې مړ شوے وهٔ او عطا خان دې پخپل کور کښې لوے کړے وهٔ. دې د عبدالله خان علي کوزي چې د شاه محمود د اول ځل تخت نشیني په زمانه کښې د کشمیر ګورنر وهٔ، زوے وهٔ. یار محمد خان بهادر او هوښیار سړے وهٔ او په هراتیانو کښې د هغهٔ ډیر طرفداران وو. یار محمد خان چې وزیر شو نو قریباً ټول شاهي اختیارات هغهٔ پخپل لاس کښې واخستل او پخپل فراست او هوښیارتوب ئې د کامران داسې اعتبار په خان راوستلو چې هغهٔ به بغیر د یارمحمد خان د صلاح مشورې نه هیڅ کار نهٔ کولو.

د 1832ء په ابتدا کښې فتح علي شاه، شاه ایران بیا د هرات صوبه پخپل سلطنت کښې د شاملولو دپاره دیرش زره فوځ په مشهد کښې د عباس مرزا ولیعهد سلطنت د سالاری د لاندې راجمع کړو د حاجي فیروزالدین او د هغهٔ نه وړومبے د شاه زمان په زمانه کښې چې ایرانیانو د هرات محاصرې کړې وے د هغې غرض دا وهٔ چې پښتون قام د خپل پدري ملک په حفاظت کښې دا شان مشغول شي چې د هندوستان د اخستو ارادې ترک کړي او دا ئې د انګریزانو په ترغیب کړې وے.

په دې ورځو کښې ایران کښې د انګریزانو ډیر اثر رسوخ وهٔ مګر د دغه وخت نه تر دې وخته پورې قریباً شلور دیرش کاله تیر شوي وو او په ایران کښې په دې ورځو کښې د روسیانو ډیر اثر و رسوخ پیدا شوے وهٔ. اګرچې د انګریزانو هم په څهٔ حصه کښې اثر وهٔ مګر شاه ایران باندې د زار روس اثر په نسبت د انګریزانو ډیر زیات وهٔ. انګریزانو د هندوستان د مقبوضاتو د حفاظت دپاره په ایران باندې خپل پوره تسلط ضروري ګڼلو. پس څهٔ وخت چې ایرانیانو په هرات باندې د حملې کولو تیاری شروع کړې نو د انګریزانو په زړهٔ کښې د روسیانو په هندوستان د حملې کولو خطره بیا راپیدا شوه. او دا کوشش ئې شروع کړو چې

ایرانیان د هرات د حملې نه منع کړي. د انګریزانو سره دا خطره وه چې کۀ چرې په هرات
کښې د روسیانو پښې ولګیدې نو دویمه حمله به ئې په هندوستان وي. یو خوا د انګریزانو
کوشش وۀ او بل خوا د ایران د سلطنت ولیعهد عباس مرزا هم په 1833ء کښې مړ شو نو اخ
نتیجه دا شوه چې انګریزان په فتح علي شاه باندې دباؤ اچولو کښې کامیاب شول. او هغه
په هرات باندې د حملې نه منع کړو.

د عباس مرزا نه پس د هغۀ زوي محمد مرزا ولیعهد سلطنت شو خو فتح علي شاه شا
ایران هم مخې کال له یعنې په 1834ء کښې وفات شو او محمد مرزا د هغۀ په ځائے تخت
نشین شو. هغه په کال 1837ء کښې بیا په هرات باندې د حملې تجویز وکړو. په حقیقت
کښې دې حملې ته هم شاه ایران د روس شهنشاه نکولس لمسولے وۀ. مګر قبل د دې نه چ
مونږ د دې حملې په واقعاتو باندې تبصره وکړو مونږ له د کابل، غزني، قندهار، پیښور
کشمیر او د سندهـ واقعات بیانول پکار دي.

## د بارکزو اقتدار

د شاه محمود او د کامران د هرات ته د تښتیدو نه پس ټول افغانستان ماسوائ
هرات نه باغي شو. او داسې هیڅ جلیل القدر انسان د پښتنو په دې سرزمین کښې نۀ وۀ چې
دې شاندار سلطنت خورې ټوکرې ئې د خپل لاس لاندې راوستې وے. محمد عظیم خان پ
کابل کښې وۀ، دوست محمد خان په غزني پروت وۀ، پوردل خان په قندهار، جبار خان پ
کشمیر کښې وۀ او د یار محمد خان په پیښور قبضه وه. د سردار فتح خان باقي دیارلس
وروبه په مختلفو علاقو کښې افسران وو. او هر یو پخپله علاقه کښې د امن او د انتظا
قائمولو کوشش کولو. ولې د هغوي ټولو په منځکښې یوه خاصه جرګه مصلحت او ش
مشترک نظام عمل نۀ وۀ. باوجود د دې چې بارکزو د سدوزو شاهي خاندان قریباً قریباً تبا
کړے وۀ مګر بیا هم د افغانستان بادشاهي او حکومت بارکزو ځان له نۀ اخستو. سره د دې
چې د سدوزو په شاهي خاندان کښې داسې یو هم څوک نۀ وۀ چې د سردار فتح خان د تبا
هغوي سره جوړه وے. ولې بیا هم دا بارکزي وروڼه د سدوزو د شاهي خاندان د یو داسې
سړي په تلاش کښې وو چې هغه د کابل په تخت کښینوي او د پښتنو منتشره شیرازه په هغ
راټوله شي.

د سدوزو په دې پریوتي حالت کښې هم د بارکزو په زړۀ کښې د احمد شاه مرحو
او مغفور ګزشته شان و شوکت او قدر موجود وۀ. او هغوي بالکل دا نۀ غوښتل چې سدوزي
دې د همیش دپاره د تاج و تخت نه محروم شي. لکه چې څۀ رنګ هغوي د افغانستان

بادشاهي د احمد شاه د خاندان وراثت ګڼلو. ورسره ورسره ئ دغه شان د جمهوريت په اصولو باندې د سلطنت او د حکومت په ټولو عهدو او اختياراتو کښې د بارکزو او د نورو لويو قبائلو د مشرانو حقوق هم ګڼل. پس څۀ وخت چې د سردار فتح خان مرحوم ورونه په خپلو خپلو علاقو کښې د انتظام قائمولو کښې کامياب شول نو هغوي د تيمور شاه په اولاد کښې د يو بادشاه د جوړولو مشوره وکړه. د ډير خط و کتابت نه پس پوردل خان چې په قندهار کښې وۀ هغۀ د زمان شاه ورور شاه شجاع ته د افغانستان بادشاهي پيش کړه او خپل ورور کندل خان ئ شکارپور ته هغۀ پسې وليږلو. شاه شجاع وړومبے هم په افغانستان بادشاهي کړې وه او د خپلې بهادرۍ د لياقت او د نيک دلۍ ثبوت ئ په ډيرو موقعو ورکړے وۀ. پس د تيمور شاه په ټولو زامنو کښې د هغوي د شاه شجاع نه اميد وۀ چې د افغانستان په دې پريشان حالۍ کښې به شايد چې هغه د پښتنو د قام پکار راشي. شاه شجاع د وړومبے نه په شکار پور کښې په انتظار ناست وۀ. د کندل خان په راتلو باندې د هغۀ اميدونه بيا د نوي سره تازه شول. او افغانستان ته د روانيدو نه وړومبے هغۀ د سردار فتح خان د وروڼو نه د امداد اقرار واخستو. دې اقرار کښې محمد عظيم خان، دوست محمد خان هم شامل وو. شاه شجاع پوردل خان سره پيښور ته راغے او محمد عظيم خان هم په دې ورځو کښې پيښور کښې وۀ شاه شجاع لا بادشاه نۀ وۀ او لا ئ د حکومت واګې لاس کښې نۀ وې اخستي. څکه چې لا په دې خبره بحث جاري وۀ چې د بارکزو وروڼو او د نورو قبائلو د مشرانو حقوق دې شاه شجاع د تخت نشينۍ نه وړومبے تسليم کړي. مګر شاه شجاع انکار وکړو. د هغۀ اراده بالکل هم هغه د استبدادانه حکومت کولو ته وه. چې کوم هغۀ وړومبے کړے وۀ. هرڅومره چې محمد عظيم خان په شاه شجاع د خپل غلط خيال نه د اړولو کوشش وکړو. مګر شاه شجاع يوه هم ونۀ منله. او هغوي ته ئ ووئيل چې کۀ چرې ما بلا شرط بادشاه کوئ او زما هر قسم جائز او ناجائز حکم منئ او په ما باندې د هيڅ قسمه پابندۍ او قيدونه نۀ لګوئ خو زۀ بادشاه کيږم او کۀ نۀ وي نو زما داسې بادشاهي نۀ ده پکار. چې په هغې کښې زۀ د څۀ خاصو شرطونو پابند يم. بارکزو سردارانو د سدوزو د استبدادي حکومت مزه څکلې وه. او هغوي بيا د خپله لاسه خپل څټونه د هغوي تورو ته نۀ غزول. پس هر کله چې شاه شجاع د بارکزو او د نور قام د حقوقو د تسليمولو نه انکار وکړو نو هغوي شاه شجاع هډو کابل تللو ته پرې نۀ ښودو. او چونکې هغۀ سره څۀ خاص طاقت نۀ وۀ نو د يو معمولي مقابلې نه پس شاه شجاع واپس شکارپور ته وتښتيدو. او اخر د هغه ځاے نه هم د راجپوتانې د ريګستان په لاره لدهيانې ته ورسيدو. شاه شجاع دا قسم سرتيزي په داسې پريوتې حالت کښې او بغير د ځان نه بل د هيڅا حقوق په ځان باندې نۀ منل د هغۀ سخته غلطي وه.

دې واقعې نه پس بارکزو ورونو د تیمور شاه بل زوي ایوب خان سره گفت و شنید شروع کړو. ایوب خان لکه څرنګ چې شاه شجاع په یوه انتها وۀ هغه په بله انتها وۀ. هغۀ محمد عظیم خان ته ووئیل چې ما تش بادشاه کړئ او د سکې ضرب زما په نوم جاري کړئ. نور څۀ زۀ نۀ غوارم. ټول اختیارات تاسو واخلئ ماله صرف ډوډۍ او د بادشاه خطاب راکړئ. دغه شان ایوب خان بادشاه شو. او محمد عظیم خان د هغۀ وزیر شو. اگر چې ایوب شاه خو په ظاهره دا اقرار کړے وۀ چې د سلطنت ټول واک اختیار دې د محمد عظیم خان په لاس کښې وي او په واقع کښې هم هغۀ د ټول حکومت واگې د هغۀ په لاس کښې ورکړې وې. مگر پټ په پټه هغۀ شاه محمود او شاه شجاع سره د کابل تخت هغوي ته د ورکولو متعلق خط و کتابت شروع کړو. د ایوب شاه اصلي مطلب دا وۀ چې د سدوزو خاندان نه دې بادشاهي لاړه نشي. او زما په ځاے دې یو مضبوط او طاقتور بادشاه هم زما د خاندان نه مقرر شي. دا خطونه د هغۀ ونیولے شو. د دې خطونو نه علاوه د هغۀ ورونو سلطان علي او محمد مراد هم د کابل او د قندهار نه هم دغه شان خطونه شاه محمود او شاه شجاع ته لیکلي وو. او دا ټول خطونه ونیوے شو او دا ترې صافه ثابته شوه چې د سدوزو قبیلې خپلې ټولې پرې جنبې او ورانې دشمنی د بارکزو د تباه کولو په غرض شاته غورځولي دي او د سردار فتح خان ورونه د افغانستان د حکومت نه بالکل محروم کول غواړي. بارکزو دا خیال وکړو چې مونږ خو د خپل طرفه د سدوزو د حقوقو دومره قدر کوؤ چې د هغوي بې طاقته او شړونکي شهزادګان په تخت باندې کښېنوؤ مگر هغوي زمونږ د هیڅ قسمه حقوق منلو ته تیار نۀ دي. بلکې زمونږ د تباه کولو سازشونه کوي. له دې کبله هغوي د دې خاندان د بیخ کنی فیصله وکړه. ایوب شاه ته خو هغوي نور څۀ ونۀ وئیل صرف د تخت نه ئې کوز کړو او د کابل نه ئې وشړلو. سلطان علي ئې په کابل کښې مړ کړو او محمد مراد ئې په قندهار کښې قتل کړو. د دې سزاګانو ټول مستحق وو او بارکزو په دې کښې هیڅ زیاتے نۀ دے کړے. د دې نه پس د ټول سلطنت د انتظام کار د محمد عظیم خان په ذمه شو. مګر چونکې نۀ هغۀ د بادشاهي دعوې کړې وه او نۀ ئې د افغانستان تاج په سر ایښے وۀ په دې وجه د قبائلو مشرانو او خپلو ورونو هم هغۀ ته د برابرۍ په نظر کتل. او د هغۀ د احکامو تعمیل به چا په ښۀ شان سره نۀ کولو. د یو بادشاه په غیر موجودګی کښې قدرتي طور په ملک کښې بیا هر طرف ته اړے ګړے پیدا شو. او هرې یوې صوبې خپل ځان د افغانستان د سلطنت نه د جدا کیدو کوشش کولو.

سردار رنجیت سنګهـ خو ځان د پښتنو نه د ډیرې مودې نه ازاد کړے وۀ او په پنجاب کښې ئې خودمختار حکومت قائم کړے وۀ. نو هر کله چې ئې د افغانستان په ملک کښې دا خانه جنګی او د بادشاهانو زر زر بدلیدل ئې جاري ولیدل نو رنجیت سنګهـ له د

دریائے اټک نه راپورې غاړه د پېښور په طرف د خپل اقتدار د زیاتولو او د خوروِلو بله ښه موقع په لاس راغله. چنانچه هغهٔ د کال 1818ء په اخر کښې وړومبے ځل د اټک نه راپورې وتو. او تر پېښوره پورې لاړو او قبضه ئې پرې وکړه. ولې چونکې د پښتنو زور لا بالکل تباه شوے نهٔ وهٔ او هغوي د هغهٔ د مقابلې تیاری کولې له دې کبله زر د پېښور نه واپس شو او په خیر آباد کښې ئې د خپل فوځ یوه دسته د اټک پــه ګودر باندې د قبضې ساتلو دپاره پریښوده. او د پېښور حکومت ئې جهانداد خان پښتون د اټک سابق ګورنر له ورکړو. مګر رنجیت سنګهـ لا د اټک نه نهٔ وهٔ پورې وتے چې یار محمد خان بارکزي چې د رنجیت سنګهـ د یورش نه وړومبے د پېښور حاکم وهٔ بیا په پېښور باندې په زور قبضه وکړه. او جهانداد خان ئې وویستلو.

د دې نه پس رنجیت سنګهـ د کشمیر د تسخیر قصد وکړو. محمد عظیم خان خو لکه څنګه چې وړومبے ذکر شوے دے د سردار فتح خان د مرګ په وجه د کشمیر نه په خپله سره د فوځ د یوې لویې حصې کابل ته تلے وهٔ او پخپل ځاے باندې ئې میرنے وورور جبار خان د کشمیر د حفاظت دپاره پریښې وهٔ. د فوځ د کمۍ او د بارکزو او د سدوزو د بې اتفاقۍ په وجه رنجیت سنګهـ دا موقع د کشمیر د فتح کولو دپاره ډېره مناسب وګڼله. چنانچه هغه پخپله سره د یو لوے فوځ او توپخانې د 1819ء په سپرلي کښې په کشمیر باندې د حملې کولو په غرض روان شو. او په پنځم د جولایی 1819ء د کشمیر په درو باندې پورې وتو. جبار خان د هغهٔ مقابلې ته تیار ولاړ وهٔ. یو ښهٔ مضبوط جنګ په فریقینو کښې وشو. پښتنو د سکهانو فوځ له شکست ورکړو او دوه توپې ئې ترینه هم واخستې. مګر جبار خان د هغوي د اخري زور د ماتولو دپاره بالکل تعاقب ونهٔ کړو. نتیجه دا شوه چې شکست خورده سکهان بیا رایو ځاے شول او په پښتنو باندې ئې مکمله فتح حاصله کړه. او دغه شان کشمیر د پښتنو د لاس نه د همیش دپاره لاړو.

رنجیت سنګهـ دا شان سرے نهٔ وهٔ چې د پښتنو د دې خانه جنګو او بې اتفاقو په دوران کښې هغه په ارام ناست وے او پوره فائده ئې ترې نهٔ وے اخستې. چنانچه د کشمیر د تسخیر نه یو څو میاشتې پس هغه پخپله د ډېره غازي خان د اخستو دپاره روان شو. دا هم د پښتنو ملک وهٔ. ولې چونکې هیڅ باقاعده فوځ د هغهٔ د مقابلې دپاره په دغه ځاے کښې موجود نهٔ وهٔ نو هغه بې تکلیفه دا ملک هم د پښتنو نه لاندې کړو. په کال 1821ء کښې تر ډېره اسماعیل خان پورې ټول ملک خپل باجګزار کړو. او د دې علاقې حکومت ئې حافظ احمد خان سابق ګورنر ته پریښودو.

د دې نه پس د رنجیت سنګهـ اتهٔ زره سپاهیان د بهوت سنګهـ د مشرۍ د لاندې بیا د دریائے سندهـ نه راپورې وتل او په پېښور باندې ئې د حملې کولو تیاری شروع کړې. عظیم

خان فوراً د څهٔ فوځ سره پخپله د هغوي مقابلې ته راووتو. مګر د پښتنو فوځ کښې نهٔ تنظیم وهٔ او نهٔ وسله. د باقاعده انتظام د عدم موجودګی په وجه څهٔ مستقل فوځ نهٔ وهٔ پاتې شوې. پس عظیم خان مجبور شو او د یوسفزو او د پیښور د علاقې د نورو قبائلو نه ئې امداد وغوښتو. تراوسه پورې سکهانو د پښتنو نه د هغوي ممالک مفتوحه اخستي وو مګر اوس هغوي عین د پښتنو په ملک کښې رانوتل. او د هغوي خپله خودمختاري ئې په خطره کښې واچوله. د عظیم خان په سوال جواب باندې د یوسفزو بیشماره ځوانان د نوښار په مقام باندې د لنډې سیند په ګسه غاړه د ترکو غونډو باندې پریوتل. عظیم خان د پیښور نورو قبائلو سره د لنډې سیند په بله غاړه پریوتو. اګر چې پښتانهٔ ټول د دې مشترکه خطرې د مقابلې دپاره په ډیر اخلاص سره را یو ځایې شوي وو. مګر چونکې د یوسفزو د قبائلو څوک خاص سالار نهٔ وهٔ، نهٔ هغوي ته د باقاعده جنګ قواعد چا ښودلي وو او نهٔ هغوي سره توپخانه وه. د سکهانو فوځ بالکل منظم او د یورپین افسرانو د کمان لاندې وهٔ او رنجیت سنګهه پخپله د خپل فوځ د جنګولو دپاره راغلے وهٔ. په څوارلسم مارچ 1823ء د دواړو فوځونو مقابله د نوښار په ذکر شوي مقام باندې شروع شوه. سکهان څهٔ خو د جنرل ایلرډ General Allard د لاندې په یوه غاړه د عظیم خان د لښکر مقابلې ته پاتې شول او څهٔ د سیند نه په یوسفزو باندې د حملې کولو دپاره راپورې وتل. پکار دا وو چې نهٔ خو عظیم خان سکهان د سیند نه پورې وتو ته پریښې وے او نهٔ د یوسفزو لښکر ئې بې امداده پریښې وے. مګر د عظیم خان د لښکر د کمزورۍ او د بزدلۍ په وجه او د یوسفزو د ناپوهۍ او د نا تجربه کارۍ په سبب د رنجیت سنګهه فوځ د لنډې سیند نه بې ډزه ډوزه راپورې وتو. د یوسفزو ځوانانو په دا قسم بې مثله بهادرۍ او شجاعت د سکهانو سره جنګ وکړو چې د رنجیت سنګهه د فوځ څلور حملې ئې پرله پسې پسپا کړې. او قریب وه چې د رنجیت سنګهه فوځ له ئې مکمل شکست ورکړے وے مګر رنجیت سنګهه په خپله پنځمه حمله سره د خپلې محافظې دستې وکړه او ټول فوځ ئې د جنرل وینچورا General Ventura د کمان د لاندې په یوسفزو راوغورځولو. عظیم خان او د هغهٔ ورونړو په بله غاړه تماشه کوله او د هیڅ قسم امداد ئې د یوسفزو لښکر ته ور نهٔ کړو. اصلي خبره دا وه چې د عظیم خان ورونړو له رنجیت سنګهه رشوت ورکړے وهٔ او هغوي سکهانو سره جنګ کول نهٔ غوښتل. د عظیم خان ټوله خزانه او د کور بیبیانې د میچنی په مقام باندې وے. او هغهٔ سره په نسبت د یوسفزو د خپلې خزانې او د حرم زیات فکر وهٔ. هغهٔ ته معلومه وه چې زما ورونړه بالخصوص یار محمد خان او سلطان محمد خان د سکهانو په مرسته شوي دي. او کهٔ چرې ما خپل فوځونه د سیند نه پورې ایستل او بیا مې شکست وخوړو نو زما ټوله خزانه او د کور خلق به د دشمن په لاس ورشي.

نتیجه دا شوه چې یوسفزو پښتنو د ډیرې سختې مقابلې نه پس شکست وخوړو ولې

د دې شکست نه پس سمدستي بله ورځ دا بهادر او جانباز یوسفزي مجاهدین بیا راټول شول او د پیرزاده محمد اکبر په مشرئ کښې سکهانو سره د بل جنګ کولو دپاره تیار شول. ولې دلته ورته غرمه معلومه شوه چې عظیم خان د بلې غاړې نه تبنتیدلے دے. پس مجبوراً هغوي هم میدان کښې ایساریدل مناسب ونۀ ګڼل. او واپس شول او په خپلو غرونو او علاقو کښې تر ډیرې مودې پورې سکهانو سره غزاګانې وکړې. د دې نوښار د جنګ متعلق په هغه وخت سره مویزي نومے یو شاعر یوه چاربیته وئیلې ده چې د هغې لیکل هم مونږ دلته مناسب ګڼو.

قاصد د بادشاه راغے یوسفزي ولړزیدۀ
په نیت د غزا لاړ شۀ په نوښار ورژیدۀ

قاصد د بادشاه راغے رالیږلے عظیم خان
د اوله ئ جرګه کړل ملایان او ملکان

دارو ګولې په ما دي درکوم به خرڅ تاوان
الفاظ ئ خوږ شکر وو په هر چا ولګیدۀ

الفاظ ئ خوږ شکر وو پرې راضي یوسف نامه شوه
راتلل به ځاے تر ځایه نۀ ئ خوب نۀ دمه شوه

خپل کور په هر چا اور شو پیښه داسې علامه شوه
توکل دعا ئ وکړه سیلابونه بهیدۀ

توکل دعا ئ وکړه اکوزي وو په زرګونه
راتلل ئ مشران د سیند په غاړه لکه غرونه

د زغرو ئ خلکې وے دوشالې ئ په سرونه
د حسن په صفت ئ بادشاهان هوسیدۀ

د حسن په صفت به ئ لګیا یم څو څو کاله
ګلونه د ګلاب وو خزان توئ کړل زما لاله

ساتل به میندو خویندو الله وروستل قضا له
اجل ئ په ډیرو وو دلته هسې لوئیدۀ

اجل ئ په ډیرو وۀ اشیزو وکړله توره
رحمت په سلارزو شه مدعا ئ کړه حضوره

نران دي ګدائیزي سرونه نۀ اړي له تربوره
خاونده خدینخیل د پیښې کله تبنتیدۀ

د پیښې نۀ جار وځي نوریزي دي اګدران
مدام ئ صف جنګي وي د وښکلو په میدان

د الله نوم چې به ئ واخست ترې به مات شولو سکهان
د ښو د کمنډه ئ رنجیت ویریدۀ

د ښو په کمنډ کښې شهید شوے دے پیر خان
د قام په مخکښې مړۀ شول فیض طلب او لطاف خان

شیرداد، محب الله ورونه پرې میرات شو سرور خان
اسماعیل زي د لوي ملا سره لعلونه توئیدۀ

اسمٰعیل زي د لوي ملا په مخکښې مړۀ شو امانت
معصم او عدل شاه دي الله کاندي په جنت

دوښکلو جنګ ئ وکړو په میدان کښې ښۀ ساعت
په مرګ ئ په اسمان کښې ملائک وژړیدۀ

په زمکه ژاړي جونه ملائک دي په اسمان
یو چړق په ناره پریوت اخوندخیل شو بندیوان

د مرګه پورې پلار د حضرت دین کوي ارمان
میرات ئ پالنګونه په میدان خاوړې کیدۀ

میرات ئ پالنګونه په میدان شولو یواځې
ژاړي ئ میاندې خویندې کلمې ئ کړې اغازې

د خاوړو نه شوې لاندې هغه ښې پګړې درازې
په صفت ئ مویزے لکه فولاد ویشیدۀ

صفت د یوسفزو کوم چې قتل ئ کړو خان
په مخکښې ئ تمام شو پیر ملا او صاحبزادګان

په دوزخ کښې به کفار وي په جنت کښې مؤمنان
هر بیت د مویزي لکه مرجان بیعه کیدۀ

د دې نه پس رنجیت سنګهـ هم د یوسفزو او هم د پیښور طرف ته وړاندې شو او په پیښـور ئ قبضـه وکړه. رنجیت سنګهـ د دریائے اټـک متصل قبلي علاقه څان سره وساتله او پـه پیښور کښې ئ یار محمد خان د عظیم خان ورور خپل باجګزار کړو. د رنجیت سنګهـ دا مـدعـا وه چـې د پیښور حکومت یار محمد خان سلطان محمد خان له ورکولو باندې به زۀ په یـار محمد خان د والئ او د عظیم خان په منځکښې بې اتفاقي پیدا کړم. د دې خبرې فیصله د جنګ نـه وړومبے رنـجیـت سـنـګهـ سلطان محمد خان سره کړې وۀ او هم دغه لویه وجه د پښتنو د شکست شوه.

محمد عظیم خان د نوښار د شکست نه پس بې حده ډیر غمژن شو اګر چې دا جنګ هـم د هغۀ په غلطئ بائللے شوے وۀ، مګر هغۀ سره اوس د ټول پدري وطن د حفاظت غم شو. د ډیرې مودې نه د هغۀ صحت خراب وۀ مګر د پښتنو د مصیبتونو دې اخري صدمې هغه ډیر بـې حـالـه کړو. د دې نه علاوه د ډیرې شراب نوشئ په وجه هغۀ فوځي کار په ښۀ قابلیت او لیـاقـت سره نشو کولے. پس هغۀ د فوځ سالار دوست محمد خان مقرر کړو او پخپله د خپل صـحـت د ښـۀ کـولو دپاره کابل ته روان شو. مګر هغه دومره کمزورے شوے وۀ چې په لاره کښې لتـه بـنـد کـلـي کښې مړ شو. عظیم خان اګرچې نۀ ډیر اعلیٰ دماغ لرلو او نۀ څۀ ډیر مستقل مزاج سړے وۀ بلکې اکثر به د شرابو په نشه کښې مخمور وۀ. مګر ډیر خوش اخلاق، نیک دل او نیک نیتـه سـړے وۀ. د هـغۀ د مرګ نه پس د هغۀ نه قریباً اووۀ ویشت لکه پونډه خپـل زوي حبیب الله خان ته پاتې شو. د مرګ نه یو څو ګینټې وړاندې هغۀ خپل زوي حبیب الله خـان تـه قسم ورکړو چې دا دولت به تۀ د سکهانو برخلاف د هغوي د پښتنو د ملک نه په شړلـو لـګـوے او خپـل مـلـک بـه د غیـر قومونو د پنجې نه ازادوے. رنجیت سنګهـ علاوه د کشمیر او د پیښور د علاقې نه ملتان او ډیره غازي خان هم د بارکزو نه قبضه کړل.

اګـرچـې د دریـائـے اټـک نـه قبـلـې طـرف ته د پښتنو د علاقې خودمختاري د هغوي دلاسه د بارکزو د کورنئ په بې اتفاقو ووتله مګر د دې علاقې قبائل نۀ خو د سکهانو حکومت پـه اسانه په څان باندې منلو ته تیار وو او نۀ هغوي په خپل ملک کښې د سکهانو باقاعده نظام حـکـومت برداشت کولے شو. چنانچه د نوښار د جنګ نه پس سمدستي په چارچاپیره ملک کښـې د سـکـهـانو برخلاف عام خلق په ډیر جوش سره راپاڅیدل او په سکهانو باندې ئ ټول مـلـک سـور تـنـور کړو. هم دغه وجه وۀ چې رنجیت سنګهـ د دې ملک حکومت یار محمد خـان لـه پـه ورکـولـو مـجبـور شو. او یـار مـحـمد خان د دې په بدل کښې د رنجیت سنګهـ باجګزار شو. په دې طریقه اګر چې رنجیت سنګهـ خپل څان د یو لوے مشکل نه خلاص کړو او قـریـبـاً درې څـلـور کالو پورې یار محمد خان د پیښور په علاقه باندې په ارام سره حکومت وکړو. ولې په کال 1827ء کښـې سیـد احـمد شاه بریلوي د پیښور په علاقه کښې راښکاره

شو. هغهٔ د پښتنو او د نورو مسلمانانو د ملک نه د سکهانو د ایستلو دپاره د سکهانو برخلاف په ډیر عزم او ایمانداری سره یو عظیم الشان جهاد شروع کړو. ولې افسوس دے چې د کوم قوم د خدمت کولو او د ازادولو دپاره هغهٔ دومره لوے مهم په خپل سر اخستے وۀ هم د هغې قوم لویو لویو خانانو او ملکانو بلکې یار محمد خان بارکزي پخپله د هغهٔ د کامیابۍ په لاره کښې هزار ها مشکلات پیدا کړل. او د هغهٔ د تباه کولو دپاره ئ قسما قسم کوششونه وکړل. سید احمد شاه د اصل نه سید وۀ په هندوستان کښې د بریلي د ښاروسیدونکے وۀ او په بهادری، علمیت او تقوئ داری او قابلیت کښې ئ ثاني نهٔ لرلو. چونکې هغه د یو ډیر لوے بااثر خاندان فرد وۀ په دې وجه امیر خان پنډاره د موجوده نواب ټانک ور نیکهٔ چې د نولسمې صدی عیسوي په ابتدا کښې انګریزانو سره په شمالي هندوستان کښې د ډیرو جنګونو په کولو مجبوره شوے وۀ د ځان سره ملازم کړو. ولې هر کله چې په کال 1819-20ء کښې د امیر خان او د انګریزانو په منځکښې جوړه وشوه او امیر خان انګریزانو د ټونک د علاقې نواب کړو نو سید احمد شاه په دې ناراض شو د هغهٔ ملازمت ئ ترک کړو او خپله ټوله توجه ئ مذهبي کارونو او ریاضت ته واړوله. لږه موده پس هغه دهلي ته راغلو. او هغلته هغهٔ د خپل علمیت او پاک ژوند په وجه د ټولو مسلمانانو توجه ځان ته راښکله. چونکې هغهٔ خلقو ته صرف د قرآن شریف او د احادیثو تعلیم ورکولو او مسلمانان ئ د باطل رواجونو او ذ شرک د کارونو نه منع کول. هغهٔ ډیر زر د یو مذهبي مصلح نوم حاصل کړو. او لوے لوے عالمان او ملیان چې د دې ګنده ګنده رسمونو او مذهبي بدعتونو مخالف وو د هغهٔ نه راچاپیره شول او د هغهٔ د مشری لاندې ئ د اسلام مذهب په خپل قدیمي پاک والي او اصلیت کښې دنیا ته پیش کړو.

په دې علماؤ کښې مولانا شاه اسماعیل او مولانا عبد الحئ د ډیرې لویې پایې قرآن دان او محدثین وو او تر اخره پورې د اسلام او د مسلمانانو په خدمت کښې د سید صاحب ملګري وو. تقوية الايمان د مولانا شاه اسماعیل مشهور تصنیف دے چې په هغې کښې هغهٔ صرف د قرآن او د احادیثو په تعلیم باندې زور ورکړے دے. او د دې عقیدې تردید ئ کړے دے چې په قرآن شریف باندې صرف لوي لوي عالمان پوهیدې شي. په دې کتاب کښې هغهٔ دا خبره ثابته کړې ده چې صرف کلام الله او هغه احادیث چې کوم د کلام الله نه برخلاف نهٔ دي د هر مسلمان دپاره واجب العمل دي. او هر سړے په هغې باندې پوهیدې شي. په دې ځاے کښې د سید صاحب او د هغهٔ د مریدانو ټول حالات لیکل او کوم کوششونه چې هغوي په ډیر اخلاص او جوش د هغې زمانې د پښتنو د اصلاح دپاره کړې وو هغه په تفصیل سره بیانول مشکل دي. زمونږ د مقصد دپاره هم دومره کافي ده چې د پښتنو او د هغوي د علاقو ازادولو دپاره کوم جهاد چې هغوي د سکهانو برخلاف کړے وۀ هغه مختصر طور سره په دې

مقام بیان کړو. او په کومې ناشکرۍ چې د یوسفزو د قبیلې بعضې بعضې خانانو د هغوي د خدماتو صله هغوي ته ورکړه د هغې هم ذکر وکړو.

په دهلي کښې هرکله چې سید صاحب د عامو مسلمانانو په مذهبي اصلاح کښې مشغول وُ نو هغهٔ په دې زمانه کښې دا کوشش هم کولو چې د عملي مبلغانو او مجاهدینو یو داسې ټولے د ځان نه راتاؤ کړي چې هغوي د خدائے په لارو کښې او په جهاد في سبیل الله کښې نهٔ د خپل سرومال او نهٔ د خپل بال بچ فکر کوي. په دې ایامو کښې هغهٔ په پنجاب کښې د سکهانو د لوټمار، د ډاکو او په مسلمانانو باندې د هغوي د ظلم و ستم خبرې ډیرې کثرت سره اوریدلې. او دا هم ورته معلومه شوه چې د سکهانو مذهبي لیوني د مسلمانانو منکوحه ښځې په زور باندې د ډاکو په رنګ د کلو نه بیائي. او بیا ئې په زور باندې ځان سره په ښځه والي مجبوروي. او د خپل مذهب مطابق ورسره ودونه کوي. دې قصو او واقعاتو د سید صاحب په دل و دماغ کښې د غیرت او د مذهبي ورورولۍ یوه جذبه راوچته کړه او هغهٔ دا خپل فرض وګڼل چې هغه د سکهانو برخلاف د جهاد اعلان وکړي.

د دې غرض دپاره هغه د خپلو مریدانو دا ورکوټے ټولے رایوځایے کړو او د ټولو نه وړومبے هغه سره د دې ټولي د الله تعالیٰ نه د کامیابۍ د دعا غوښتلو دپاره مکې شریفې ته حج دپاره روان شو. په کال 1822ء کښې هغه کلکتې ته ورسیدو او په لاره کښې د هرې فرقې د مسلمانانو د لکونو تعداد کښې د هغوي استقبال وکړو او د هغهٔ په لاس ئې بیعت وکړو. څلور کاله هغهٔ د مکې شریفې، مدینې منورې د عربستان او د اسلامي ملکونو نورو مقدسو مقاماتو په زیارت کښې تیر کړل. او په کال 1826ء کښې واپس دهلي ته تشریف راوړو. په دهلي کښې هغهٔ دا وخت د باقاعده جهاد اعلان وکړو. او خلقو ته ئې د خپلې جنډې د لاندې د راجمع کیدو دعوت ورکړو. وړومبے خو هغه ټونک ته د دې تبلیغ دپاره لاړو. د ټونک د نواب زوے چې بیا پخپله هم نواب شو د هغهٔ په لاس بیعت وکړو. او د دې پاک مطلب تر سره کیدو دپاره ئې ورسره ډیر مالي امداد وکړو. په مختلفو ښارونو باندې د ګرځیدو او د وعظ او تبلیغ نه پس هغه په کال 1826ء کښې د پنځو سوؤ مریدانو سره په طرف د افغانستان په دې غرض روان شو چې د هغې ملک د درانو حکمرانانو نه د سکهانو برخلاف امداد حاصل کړم. د روانیدو په وخت کښې هغهٔ د ځان نه وروستو د نورو مجاهدینو د راټولولو دپاره نور مشران پریښودل. او دا انتظام ئې وکړو چې دا مختلف ټولي به هغهٔ سره د سنده په علاقه کښې د خیرپور په مقام راغونډیږي.

سید صاحب پخپله د سنده په لاره خیرپور ته ورسیدو. میر رستم خان د خیرپور میر د هغهٔ ډیره خاطر تواضع وکړه. د څو ورځو د قیام نه پس سید صاحب قندهار ته تشریف یوړو. ولې د دې ځائے بارکزي حکمران پوردل خان او کندل خان چې دا ډیر خودغرضه او

حاسدان وو هغوي د سيد صاحب د ارادې او د مقصد په پاک والي او د هغهٔ په اخلاص باندې هډو ځان پوهه نهٔ کړو. او هيڅ د امداد وعده ئې هغهٔ سره ونهٔ کړه. اوس سيد صاحب د دولتمند او با اثره خلقو نه د امداد حاصلولو طمع قطع کړه او د خپل مقصد د پوره کولو دپاره ئې صرف په غريبانانو خلقو اسره وکړه او واپس د غزني او د کابل په لار د پيښور علاقې ته راکوز شو. او د 1827ء په ابتدا کښې هغهٔ د يوسفزو ملک کښې د پنجتار په مقام ډيره ولګوله.

دې ورځو کښې سلطان محمد خان او يار محمد خان په پيښور باندې د سکهانو د طرف نه باجګزار حکمرانان وو. د سلطان محمد خان يار محمد خان او د دوست محمد خان په منځکښې سره ورانه وه. ولې چونکې يار محمد خان ځان د سکهانو د سيوري لاندې کړے وهٔ له دې کبله دوست محمد خان هم هغهٔ ته ښهٔ وئيلے نشو. هر کله چې يار محمد خان د هر طرف نه بې غمه شو نو د هغهٔ د خپلې زير حکومت علاقې په ارتوالي کښې مشغول شو. او وړومبے ئې د يوسفزو د پنجتار علاقې د مسخر کولو قصد وکړو. د پنجتار خانانو په دې زمانه کښې د يوسفزو په اکثرو تپو کښې اقتدار حاصل کړے وهٔ. ولې د درانو د باقاعده لښکر د مقابلې طاقت ئې ځان کښې نهٔ لرلو. هر کله چې سيد صاحب د خپلو ملګرو سره پنجتار ته راورسيدو نو د پنجتار خانانو دا موقع غنيمت وګڼله. هغوي ټولو په اتفاق سره سيد صاحب خپل مشر تسليم کړو او د درانو او د هغوي د مالکانو سکهانو مقابلې ته تيار شول. د سيد صاحب پنجتار ته د رارسيدو نه لږې ورځې پس بدهـ سنګهـ سندهنواله چې د رنجيت سنګهـ د خپل خاندان او د هغهٔ جرنيل وهٔ د سکهانو يو لښکر سره اکوړې ته راغلو. سيد صاحب سمدستي په دې لښکر د حملې دپاره تيار شو. او د يوسفزو او د خپلو مريدانو يو بې قاعدې لښکر سره په دې غرض اکوړې ته راکوز شو. په يار محمد خان باندې هم د بدهـ سنګهـ راتلل ښهٔ ونهٔ لګيدل. هغهٔ سره د خپل ځان ويره پيدا شوه. په دې سبب هغهٔ هم سيد صاحب سره د امداد دپاره راغلو. بدهـ سنګهـ يارمحمد خان له ډيرې دوړې دپکې ورکړې او هغه ئې ويرولو.

د دې نه علاوه چې يار محمد خان د سيد صاحب دومره زور او اثر په خپلو سترګو وليدو نو هغهٔ سره ئې حسد شروع کړو. بدهـ سنګهـ سمدستي د ځان نه چار چاپيره خندق وکنستو مګر سيد صاحب په پوره جوش او بهادرۍ په سکهانو حمله وکړه. يو خونريز جنګ وشو چې په هغې کښې د يوسفزو ځلمو په ډيرې ځوانمردۍ جنګ وکړو. ولې يار محمد خان عين په ترلې جنګ کښې د سيد صاحب نه راوتښتيدو. او د شکست اوازونه ئې وښکل. په دې سيد صاحب د يار محمد خان نوم يارو سنګهـ کښيښودو. نتيجه دا شوه چې سکهانو د سيد صاحب حمله پسپا کړه او هغه اکوړې نه د سکهانو د شړلو نه بغير

راواپس شو. سکهان په دې جنګ کښې دومره کم طاقته شوي وو چې د سید صاحب تعاقب ئ ونهٔ کړې شو. او سید صاحب سرخ رویه او کامیاب پنجتار ته واپس لاړو. حقیقت دا دے چې سکهانو په دې جنګ کښې د سید صاحب د لاسه ډیر سخت نقصانات بیاموندي وو. سکهانو او یار محمد خان چې د سید صاحب دا زور او طاقت ولیدلو نو مجبوراً یار محمد خان سید صاحب سره په دې شرط جوړه وکړه چې یار محمد خان به د یوسفزو په علاقه باندې د مخکښې دپاره نهٔ بلوسیږي.

د اکوړې د جنګ نه پس سکهان پیښور ته راغلهٔ او په بالا حصار کښې د شاه شجاع د وخت ښکلي ښکلي محلونه او د ښار نه چار چاپیره باغونه ئ د خشاک د لرګو دپاره تباه او برباد کړل. او په یار محمد خان باندې ئ خراج هم زیات کړو. د یار محمد خان په خپل ځان باندې د سکهانو د باج زیاتولو په سبب د هغهٔ او د سید صاحب په منځکښې تعلقات سخت کشیده شول. ځکه چې سید صاحب دا نهٔ غوښتل چې د یار محمد خان په ذریعه دې د سکهانو اقتدار او طاقت د پښتنو په ملک کښې قائم شي. ولې د یار محمد دا منشا وه چې د سکهانو د سیوري لاندې زهٔ خپل مقبوضات وسیع کړم. او سید صاحب د خپلې مخې نه لرې کړم. پس په کال 1829ء کښې هغهٔ دا کمینه او ذلیل حرکت وکړو چې هغهٔ سید صاحب له د یو اجرتي قاتل په ذریعه زهر ورکړل. سید صاحب د ډیر تکلیف نه پس خدائے تعالیٰ بچ کړو مګر یار محمد خان له د سزا ورکولو دپاره هغهٔ ورومبے د هغهٔ په ورور سید محمد خان باندې په هشنغر کښې حمله وکړه او هغه ئ د هشنغر نه وویستو. او بیا ئ د یار محمد خان نه د هنډ قلعه واخسته. په دې یار محمد خان په هنډ کښې په سید صاحب باندې حمله وکړه مګر په جنګ کښې قتل شو.

سید صاحب د دې نه پس بیا په پیښور باندې چپاؤ وکړو. ارباب فیض الله خان د هزارخانی چې د سلطان محمد خان یار محمد خان دوئ ملګرے وو هغه د سید صاحب طرف ته راواوړیدو. او په دې وجه سلطان محمد خان دوي د پیښور نه وتښتیدل. سید صاحب د یو لک روپو په باج باندې پیښور سلطان محمد خان دوئ له واپس ورکړو. او دغه شان سلطان محمد خان د سکهانو په ځاے د سید صاحب باجګزار شو. مګر سکهان د سردار شیر سنګه چې د رنجیت سنګهه زوے وهٔ.او د جنرل ونچورا د سالاری د لاندې پیښور ته د درانو د امداد دپاره بیا راغلل. ارباب فیض الله خان د سید صاحب نمائنده درانو قتل کړو او په هنډ باندې ئ هم بیا قبضه وکړه.

هر کله چې سید صاحب پنجتار ته واپس شو نو سکهان په ډیر لوے جمعیت کښې د اټک نه راپورې وتل او په دې انتظار کښې دیره شول چې هر کله سید صاحب او دراني پخپله کښې سره وجنګیږي او کمزوري شي نو بیا به پیښور واخلو. او په خپل حکومت

کښې به ئ باقاعده شامل کړو. مګر د سید صاحب اصلي جګړه د سکهانو سره وه نه چې د
درانو سره. په دي سبب هغه په جون کال 1830ء کښې د دریائے اټک نه پورې وتو او د
هزارې په علاقه کښې ئ په سکهانو جهاد شروع کړو. دا حملې هم سکهانو د هري سنګه
نلوه او د جنرل ایلرډ د سالاری د لاندې پسپا کړې او هغه بیا واپس د سیند نه راپورې وتو. د
سیند نه د راپورې وتو نه پس د سید صاحب او د سطان محمد خان دوئ تر منځه هم ډیرې
جګړې وشوې او اخر کار سید صاحب پیښور بیا فتح کړو. د پیښور د فتح په سبب په
سکهانو کښې ډیر خوف پیدا شو. او ډیر کومکونه ئ اټک ته د پیښور د حملې دپاره
واستول ولې په دې اثنا کښې د پښتنو بعضې ناعاقبت اندیش او خود غرضو خانانو د سید
صاحب د بعضې مذهبي اصلاحاتو په وجه د هغهٔ خلاف بغاوت وکړو او په یوه مقرره شپه
باندې ئ د هغهٔ په ټولو مریدانو باندې قتل عام ګډ کړو. په نومبر کال 1830ء کښې هغهٔ
پیښور بیا سلطان محمد ته پرېښودو او په خپله د کشمیر په طرف سکهانو سره د جهاد دپاره
روان شو. سکهانو سره د بیشانه ډیرو جنګونو کولو نه پس هغه بالا کوټ ته راغے او په مئ
کال 1831ء کښې هم دغلته د سکهانو سره په جهاد کښې شهید شو.

## حبیب الله خان

حبیب الله خان د عظیم خان زوي اګر چې پلار ته د زنکدن په وخت کښې قسم
خوړلے وهٔ چې تر څو مې سکهان د خپل ملک نه ویستلي نهٔ وي نو زهٔ به ارام ونکړم. مګر هغه
یو بیکاره او نالائقه هلک ثابت شو. څهٔ لږو ورځو پورې خو هغهٔ سکهانو سره جنګ جاري
وساتلو مګر نهٔ په هغهٔ کښې استقلال وهٔ او نهٔ ثابت قدمي. تر کومه پورې چې هغهٔ سره روپۍ
وې نو هغهٔ یو ښهٔ فوځ ساتلے وهٔ مګر د پلار د مرګ نه پس هغهٔ هم د شراب نوشۍ په وجه
بالکل سست شو او قوم او ملک ئ دواړه هیر شول. هر څومره کهٔ د هغهٔ مور هغهٔ ته د عظیم
خان د زنکدن د وخت وصیت وریاد کړو او د پښتنو د قوم راپریوتې حالت ئ ور په وړاندې
کړو او هر څومره ئ هغهٔ له غیرت او د ننګ ورکولو کوشش وکړو مګر هغه د خپله خویه
وانهٔ وړیدو. د فوځ مشرانو چې د خپل مشر دا حال ولیدو نو هغوي هم یو یو دوه دوه د هغهٔ د
لښکر نه ووتل او په سردارانو کښې بیا څان څانے شو. دوست محمد خان غزني ته لاړو او هم
یو د خپل ذاتي طاقت د زیاتولو کوشش شروع کړو. د عظیم خان د مرګ نه پس د محمد زو
په کور کښې قسم قسم بې اتفاقي پیدا شوې او یو ځل بیا د افغانستان په سرزمین کښې د
پښتنو وینې د یو بل د لاسه وبهیدلې.

بلخ، خلم، قندوز او بدخشان پرله پسې د شاه زمان د معزوله کیدو نه پس د پښتنو د
لاسه وتلي وو اوس کشمیر، پنجاب او پیښور هم دغه شان د غیرو خلقو په قبضه کښې

راغـلـل. دا نـهٔ وه چې ګنې د افغانستان مشران د ې خپلو کورونو جګړو په نتيجو نهٔ پوهيدل. هغوي ته په ښهٔ شان سره دا ښکاره وه چې کهٔ چرې د پښتنو مشران په خپلو کښې سره يو شي او د يـو څـو کـالـو دپـاره هم د هغو خانه جنګی بندې شي نو د پښتنو دپاره خپل تير شوې او ورک شـوې شـان و شوکت بيا حاصلول هيڅ مشکل کار نهٔ دې. هغوي ته ښه معلومه وه چې په دغه زمانه کښې هم د پښتنو د بهادرئ په مخکښې هيڅ ګاونډي قوم نهٔ شي ټينګيدې مګر د هـغـوي خـودغـرضـو او د ذاتـي طـاقـت او اقـتـدار حـاصلولو خواهـش هغوي د خپل ملـک راټولـولـو تـه او پـه هـغـوي کـښـې تـنظيم پيدا کولو ته نهٔ پريښودل. بغض او حسد او په تش هـلـو کـي بـانـدې جـنـګ هـغـوي تـه هيڅ بد نهٔ ودريدل. او هم په دې سبب هغوي پخپله او د پښتـنـو ټـول قـوم ذليل او رسوا شو. د کوم قوم نه چې يو څو کاله وړومبې نهٔ صرف مرهټه او سـکـهـان بـلـکې انګريزي حکومت هند هم په سخته ويره کښې پراتهٔ وو اوس هغوي هم د دې قومونو د خندا شول.

پـه دې ورځـو کـښـې د افـغـانسـتـان انـدروني حالت دا وهٔ چې حبيب الله خان په کابل کښې نـاسـت وهٔ يـار مـحـمد خان ، سلطان محمد خان، سيد محمد خان او پير محمد خان د رنـجـيـت سـنـګـهـ د طرف نه په پيښور کښې باجګزار وو. دوست محمد خان په غزني کښې وهٔ. پوردل خان او کندل خان او شيردل خان دوئ وروڼه په قندهار کښې حاکمان وو.

د ټولو نه وړومبې دوست محمد خان د حبيب الله خان خلاف د هغهٔ د پلار د مرګ نه شپږ مياشتې پس ور روان شو. حبيب الله خان سره دا وخت يوه پيسه موجود نهٔ وه او په کابل کښې د هـغـهٔ حـکـومـت بـالکل براءِ نام وهٔ له دې کبله حبيب الله خان خپل وررور اکرم خان قـنـدهـار تـه د پـوردل خـان دوئ نـه د امداد غوښتلو دپاره ولیږلو. او هغهٔ ته ئ ووئيل چې کهٔ چرې دوسـت مـحـمـد خـان کـابـل واخستو نو بيا د قندهار وار دې. پوردل خان خپل وررور شيـردل خـان يـو څـو زرو تنو سره د کابل په طرف د حبيب الله خان د امداد دپاره راواستول. دوسـت مـحمد خان په لاره کښې هغهٔ سره مقابل شو خو شکست ئ وخوړو. او جلال اباد ته راغـې. بيا شيردل خان کابل ته لاړو او حبيب الله خان ئ د حکومت نه برطرف کړو. او د هغهٔ فوځ ئ خپل فوځ سره شامل کړو. حبيب الله بدستور په خپل عيش و عشرت او شراب نوشی کښې مصروف وهٔ او اکرم خان چې د قندهار نه واپس راغـې نو مړ شو.

هـر کـلـه چې يار محمد خان، سلطان محمد خان او دوست محمد خان وليدل چې په کـابـل بـانـدې شيـردل خان قبضه وکړه نو هغوي درې واړو شيردل خان ته پره يوه کړه. او يو لـوې فـوځ سـره پـه کـابـل راوختـل. شيـردل خـان پـه بالاحصار کښې قلعه بند شو او د کال 1825ء ټـول ژمـې ئ پـه ډيـر سخت تکليف سره په قلعه دننه تير کړو. چونکې درې ټولې د واړو نـه ډکـې وې پـه دې وجـه پـوردل خـان هـم هـغـهٔ له څهٔ کومک ورنکړې شو. ولې په

مـخـکـښـې سپرلي کښې پوردل خان هغهٔ له فوځونه راواستول. دې فوځونو په یار محمد خان دوست محمد خان دوئ په میدان کښې حمله وکړه او د یو سخت جنګ نه پس ئ هغوي له شکست ورکړو. سره د دې یار محمد خان دوئ او دوست محمد خان د کابل د اخستو اراده پـرې نښـوده. او هـم هـغـه شان ئ د کابل په خواوشا کښې د جنګ تیارۍ کولے چې پوردل خان د قندهار نه راغے او په ډیرې فراخدلي او نیک نیتي یکي یواځې د سلطان محمد خان او د دوست محمد خان دوئ دیرې ته په ننواتې لاړو. او په ډیرو مؤثرو الفاظو کښې ئ هغوي ته د هغې ټولو مصیبتونو دا ستان ور په یاد کړو چې کوم د پائنده خان د زامنو د بې اتفاقو په وجه او د خـانـه جـنـګـو نـه پښتنو ته پیش شوي وو او دا شان خطاب ئ ورته وکړو" چې خدائے ته وګورئ راځئ چې سـره یو ځاے شو او د دې خبرې د ثابتولو دپاره چې زمونږ کورنے اتفاق مـاتـه څومره قیمتي دے زهٔ قندهار ته واپس کیږم او کابل سلطان محمد خان ته پریږدم چې په ټولـو کښې مشر دے. ولې وروم‌یے د دې نه چې زهٔ تاسو نه رخصت شم نو راځئ چې ټول په قرآن باندې لاس کیږدو چې د مخکښې دپاره به یو بل سره نهٔ ورانیږو."

پـه دې تـجویز ټولو امنا وکړه جنګ خور شو او تر څهٔ مودې پورې محمد زو ورونو کښـې ښهٔ اتفاق او صلاحیت پاتې شو مګر د پښتنو د اتفاق ستورے پریوتے وهٔ او ډیره موده نهٔ وه تیـره چې په سلطان محمد خان دوئ او په دوست محمد خان کښې بیا جګړې رادوڅارې شـوې. دوست مـحـمـد خان څهٔ موده خو په خپل قول او اقرار ولاړ پاتې شو ولې هغه د خپل اقـتـدار زیـاتـولو ډیر شوقین وهٔ. او چونکې په ټولو ورونو کښې زیات زړهٔ ور او سیاستدان هم وهٔ هـغـهٔ د سـلـطـان محمد خان په نسبت خپل ځان د کابل د حکومت زیات مستحق ګڼلو. په دې سبب د دوارو ورونو تر مینځه تر ډیرې مودې جنګ جګړې او لښکر کشۍ جاري وے. اخـر مـحـمـد خـان بیات د قزلباشو سردار چې د دوست محمد خان ماما وهٔ هغهٔ سره ملګرتیا وکړه او دوست محمد خان کابل واخستو. او سلطان محمد خان بیا واپس پیښور ته راغے.

سـر الیګزنډر برنس چې په کال 1832ء کښـې د دوست محمد خان دربار ته راغلے وهٔ نـو پـه پیښـور هم راتیر شوے وهٔ. هغهٔ د سلطان محمد خان د حکومت پحقله په هغه وخت دا شـان لیکلي وو : " د سلطان محمد خان حکومت صرف د پیښور په میدان او د کوهاټ په غـرونـو کښـې دے. اګـر چې دا علاقه د کابل په سلطنت کښې یوه ډیره زرخیزه ټوکړه ده او قریباً پنځهٔ دیرش میله پلنه ده مګر د هغهٔ مالیه ډیره لږه ده. خټـک د خپلې ټولې علاقې صرف دولـس سـوه پـونـډه سـالانـه مالیه ورکوي. د دریائے کابل نه قطب طرف ته قبائل هم څهٔ ډیره مـعـمـولـي مـالیه ورکوي. په هشنغر کښې د سلطان محمد خان یو کشر ورور وسیږي. او په کوهاټ کښې بل ورور. د ټول پیښور په علاقه کښې باقاعده فوځ درې زره دے. چې په هغې کښـې دوه بـرخـې سـوارهٔ او یـوه بـرخه پیاده دي. شپږ توپې او دوه سوه سپاهیان ټول ټال د

سلطان محمد خان په پېښور کښې فوځ دے. سلطان محمد خان سکهانو ته سل اسونه او څهٔ وریژې سالانه باج ورکوي. د دې باج د ادائیګی دپاره سکهانو د هغهٔ نه یو زوے په یرغمال کښې ساتلے دے. د کابل او د پېښور د حاکمانو په منځکښې دشمني ده مګر د کابل حکومت په نسبت د پېښور زیات منظم او مضبوط دے. د قندهار ورور د پېښور د ورور په پره ده. او دا نهٔ غواړي چې د هغهٔ د کابل ورور په پېښور او لا په قندهار باندې حمله وکړي. د پېښور او د قندهار حکومتونه د څهٔ مودې نه په کابل باندې د حملې کولو تړون کوي مګر اغلبه ده چې د کابل حاکم به دا دواړه علاقې په ډېره لږه موده کښې واخلي. کهٔ چرې حاکم کابل په پېښور حمله وکړه نو سلطان محمد خان به د سکهانو نه امداد وغواړې او سکهان به ضرور هغهٔ له امداد ورکړي ځکه چې دوست محمد خان هیچرې هم سکهانو له د باج په ورکولو نهٔ رضا کیږي.

سلطان محمد خان قریباً د پنځهٔ دیرشو کالو سړے دے. او د خپل طاقت د زیاتولو خواهشمند دے. هغهٔ په یوه زمانه کښې په کابل باندې هم حکومت کړے دے. هغه ښهٔ تعلیم یافته او د قابلیت خاوند دے، خوش اخلاق دے په لیکلو لوستلو پوهیږي. او د سلطنت کار په خپل لاس کوي. د فیصلو کولو هنر ئ بالکل نهٔ زده. د هغهٔ په عدالت کښې یوه عجیبه قسمه شور و غوغا وي. فریادیان وخت او بې وخته د هغهٔ ځاے ته هم دغه شان بې تپوسه راننوځي. او خپل فریادونه په ډېرې ازادۍ او بې باکی سره بیانوي. مګر فیصله د یوې خبرې هم نهٔ کیږي. له دې کبله خلق ډېر سخت ناراض دي. لکه د اصلي پښتنو د سلطان محمد خان د ډوډۍ دا حال دے چې د سبا ئ وي او د بیګا ئ نهٔ وي. او څهٔ دولت چې ورسره وي هغه ټول ولګوي. د هغهٔ دسترخوان هر وخت غوړیدلے وي او د درانو ډېر زاړهٔ زاړهٔ خانان د هغهٔ نه چارچاپیره راجمع وي او شپه او ورځ د هغهٔ ډوډۍ خوري. د اکرم خان او د مختارالدوله چې د شاه شجاع وزیران وو زامن او میر واعظ هم ورسره وي د فتح خان یو زوے هم هغهٔ سره وسیږي."

په قندهار کښې لکه څهٔ رنګ چې وړومبے ذکر شوے دے د پوردل خان حکومت وهٔ هغهٔ په علاقه کښې خپل وروڼه شیردل خان، رحمدل خان، او کندل خان مقرر کړي وو. شیردل خان د قندهار د ټول فوځ سالاري هم کوله. د بدقسمتی نه شیردل خان چې په دې وروڼو کښې د ټولو نه زیات زړور او قابل سړے وهٔ په کال 1829ء کښې مړ شو. او یو څو میاشتې پس پوردل خان هم انتقال وکړو. د قندهار خلق د پوردل خان نه ډېر خوشحاله وو. هغهٔ هغوي سره همیش د خپل اولاد په شان سلوک کړے وهٔ. او په دې وجه د قندهار اولس د هغهٔ د مرګ نه پس د هغهٔ ورور کندل خان خپل حاکم مقرر کړو. کندل خان کښې خو نهٔ د خپل ورور پوردل خان په شان انتظامي لیاقت وهٔ او نهٔ پکښې د شیردل خان فوځي قابلیت. په

لړه موده کښې د علاقې ټول خلق د هغهٔ نه ناراض شول. سر اليګزنډر برنس د هغهٔ د حکومت متعلق په خپل کتاب کښې وائي چې " د قندهار آمدني قريباً اتهٔ لکه ده. د هغې په فوځ کښې قريباً نهٔ زره سوارهٔ او شپږ توپې دي. مګر چونکې قندهار د بارکزو د قبيلې مرکز دے په دې وجه هغه د دې علاقې نه علاوه نور بې قاعدې فوځ هم تيارولې شي. د دې سردار حکومت هردلعزيز بالکل نهٔ دے. ځکه چې هر طرف ته په خلقو باندې زياتے او بې انصافي کيږي..... د قندهار د سردار او د پيښور د سردار پره يوه ده. او دواړه غواړي چې دوست محمد خان ته مو نقصان ورسولے مګر اغلبه ده چې هغوي به په دې کښې بالکل کامياب شي."

تر کال 1834ء پورې معلوميږي چې د افغانستان په حدود کښې څهٔ داسې قابل ذکر واقع نهٔ ده شوې او په ملک کښې مقابلتاً امن او ارام وهٔ. شاه شجاع په لدهيانه کښې په دې انتظار کښې ناست وهٔ چې ګوندې د فتح خان د ورورنو ګن والے او د هغوي د کور بې اتفاقي به د هغوي د کمزورۍ او تباهۍ باعث شي او د افغانستان سلطنت به په اسانه زما لاس ته راشي. چنانچه هغهٔ هم په دغه کال يو ځل بيا د افغانستان د تاج و تخت اخستو دپاره د قندهار په لوري روان شو مګر وروميے د دې نه چې د شاه شجاع د حملې په تفصيل سره ذکر وشي مونږ د دوست محمد خان د زور د طاقت او د طرز حکومت پحقله لږ نور هم څهٔ ليکل غواړو.

مؤرخين او هغه خلق چې چا دوست محمد خان په خپلو سترګو ليدلے وهٔ او د هغهٔ د عادتونو او د خصلتونو موازنه ئې هغهٔ سره په ملاقاتونو او بالمشافه خبرو کښې کړې وه هغوي په دې متفق دي چې د فتح خان په ورورنو کښې د هغه زمانې د واقعاتو او حالاتو مطابق د دوست محمد خان نه زياتي زړور، عادل او منصف مزاج او د پوهې خاوند يو هم نهٔ وهٔ. سره د دې چې د فتح خان نور سکه وروڼه هم وو مګر دوست محمد خان د هغهٔ د خپلو سکه ورونو نه زيات خوښ وهٔ. او اکثر به ئې هم هغه د لويو لويو مهمونو د سر کولو دپاره ليږلو. دوست محمد خان لا هلک وهٔ چې په ډيرو جنګونو کښې هغه د يو قابل جرنيل او د تجربه کار سياستدان لياقت ښودلے وهٔ. په خوئ بوئ کښې خوش اخلاقه په ګفتګو کښې ډير مهذب د خپلو مشرانو عزت کونکے او کشرانو سره ډير مهربان طبيعت وهٔ. د دې صفاتو په سبب هغه په ټول قام کښې ډير هردلعزيز وهٔ. او د هغهٔ د مشرۍ لاندې به فوځ په ډيرې خوشحالۍ خپل ځانونه د هغهٔ په حکم قربانول. د هغهٔ نور وروڼه قدرتاً د هغهٔ د دې لياقت په وجه حاسدان شول او اکثر به ئې د هغهٔ د اثر ورکولو او په خلقو کښې د هغهٔ برخلاف د بدګمانو خورولو کوشش کولو. ولې چونکې دوست محمد خان ته د ابتدا نه دا معلومه وه چې د پائنده خان په نورو زامنو کښې زما د لياقت او د قابليت بل مساوي نشته د دې دپاره د هغهٔ دا يقين وهٔ چې اخر به په ټول افغانستان کښې هم زهٔ کاميابي حاصلوم او حکومت به هم زما لاس ته راځي. هغهٔ څهٔ

مودې د جنګونو نه پس حتي الوسع دا کوشش کولو چې د پائنده خان په زامنو کښې دې کورنۍ ورانۍ او دشمنی ختم شي. هغهٔ په زور باندې بيا د خپل اقتدار د زياتولو کوشش نهٔ کولو. مګر د هغهٔ نورو ورونو ته دا ښکاره وه چې کهٔ يو ځل دوست محمد خان د طاقت خاوند شو او د افغانستان په لويه حصه ئ قبضه وکړه نو مونږ به ورو ورو د هغهٔ د اثر د لاندې ورک شو. او چونکې کابل د ډيرې مودې نه د پښتنو صدر مقام وهٔ. هغوي ټول د دوست محمد خان د کابل په علاقې باندې د قبضې کولو برخلاف وو. مګر هغهٔ د خپل استقلال او د اولوالعزمی په سبب د هغوي په ټولو منصوبو باندې کامياب شو او خپل ځان ئ په کابل، کوهستان، غزني او جلال اباد کښې ښهٔ مستحکم کړو. هر کله چې هغهٔ د دې صوبو حکومت په خپل لاس کښې واخستو نو د فتح خان په شان هغهٔ دا قصد وکړو چې په علاقه کښې مکمل امن و امان قائم کړم. د دې غرض د تکميل دپاره هغهٔ وړومبے خو د قبيلو په منځکښې خانه جنګی په قسم قسم ترکيبونو سره بندې کړې. کوم کوم خلق چې وړومبی زمانه کښې د هغهٔ نه ناراض شوي وو هغه ئ ټول رضا کړل. د ډاکوانو او د غلو د ورکولو دپاره هغهٔ شپه او ورځ په ځان يو کړل. او چارچاپيره ملک کښې ئ د خپل عدل او انصاف او د بيدار مغزی نوم خور کړو. سرکش او بغاوت وچتونکو خلقو له هغهٔ دې کښې شک نشته چې ډيرې سزاګانې ورکړې ځکه چې په ملک کښې بدامني او بې انتظامي هغهٔ د حکومت دپاره يو ډير مضر څيز ګڼلو. مګر د امن په حالت کښې به هغهٔ دا کوشش کولو چې زما رعيت دې ډير خوشحاله او دولت مند شي. د تجارت د زياتولو دپاره هغهٔ قسماقسم امدادونه ورکړل او د زراعت دپاره هغهٔ په ډيرو کلو کښې ولې او نهرونه وويستل. د هغهٔ پوليس او محکمهٔ انصاف د خلقو دپاره يو د رحمت څيز وهٔ.

په ملک کښې د عام بدامنۍ په وجه بعضې بعضې خانانو په خپلو نوکرانو او فقيرانو باندې بالکل لکه د يو مطلق العنان بادشاه د هر قسم ناجائز ظلمونه کول. د شاهي قوت د کمزورۍ په وجه د دې خانانو زور دومره زيات شوے وهٔ چې هر کله به د هغوي او د حکومت د يو حاکم تر منځه څهٔ رنجش او خفګان پيدا شو نو هغوي به سمدستي د بغاوت نشان وچت کړو. او د فتنې او فساد طوفان به ئ په ملک کښې رادوڅاره کړو. دوئ د خپل زور په وجه کله د يو حاکم او کله د بل حاکم ډله شول. او چونکې د ډيرې مودې نه د بادشاهانو او د لويو لويو سردارانو په منځکښې جنګونه روان وو. هغوي به د دې خانانو ځان ځان له خوشامندې کولې او هر يو به هغوي خپل ځان ته د را اړولو دپاره هغوي ته منتونه کول. د دې لازمي نتيجه دا شوه چې دې خانانو خپل ځانونه قريباً قريباً خودمختاره کړي وو. لارې او مسافران د هغوي دلاسه غير محفوظ وو او د ځان نه کمزوري خلق ئ تل بې تکليفه تالا کول. بيګناه خلق به ئ وژل او د هغوي مالونه به ئ ضبطول. دوست محمد خان دې خانانو ته په خپل عمل ثابته کړه

چې د یو باضابطه حکومت دپاره دا ناممکنه ده چې د خانانو دا زیاتے دې په هیڅ وخت کښې هم نظر انداز کړې شي. کومو خانانو چې د دې حکم تعمیل وکړو هغوي ته خو دوست محمد خان هیڅ ونۀ وئیل مګر چا چې د هغۀ د نبض کتو دپاره خپل خویونه زر پرې نبنودل نو هغوي سره دوست محمد خان دا شان سخت سلوک وکړو چې نۀ بیا هغوي لارې لوټ کړې نۀ ئې بیګناه سرې قتل کړل او نۀ ئې بیا د خلقو په جائدادونو په زور قبضې وکړې. سر الیګزنډر برنس د دوست محمد خان پحقله خپله رائې په دې طریقه لیکلې ده:

" In the year 1826 Kabul fell into the hands of Dost Muhammad Khan, the present chief and a brother of the Wazir Fateh Khan. Since then he has greatly extended and consolidated his power. He entrusts the town and dependencies of Ghazni to a brother and admits no one else to share his fortune. The limits of the chiefship extend to Hindukush and Bamian. On the west it is bounded by the hill country of the Hazarahs; to the south is Ghazni and to the east it stretches half way to Peshawar terminating at the garden of Nimla. Much of the country is mountainous; it contains a large proportion of arable land, which is most productive, It lies along the base of hills and derives a richness from the soil washed form them. The revenues of Kabul amount to eighteen Lakhs of rupees. Its military force is greater than any among the Afghan since the chief retains a body of good horses who are well mounted and well accoutred. He had also two thousands infantry with other auxiliaries, village troops and a park of fourteen guns which are well served for a native State. This country is by nature strong and mountainous though it has good roads through it.

The reputation of Dost Muhammad Khan is made known to a traveller long before he enters his country and no one better merits the high character which he has obtained. He is unremitting in his attention to business and attends daily at the courthouse with the Qazi-0 Mullahs to decide every cause according to the law..... Trade has received the greatest encouragement from him and he has derived his own reward since the receipts of the Custom house of the city have increased fifty thousand rupees and now furnish him with a net revenue of two Lakhs per annum. One in forty i.e. two and a half per cent is the only duty levied in his territory; and the merchant may travel without guard or protection from one Frontier to another, an unheard of circumstance in the time of the Kings. The chief of Kabul in his zeal for orthodox government has deprived his subjects of the luxury of wine and spirits as being prohibited by his creed. The enactment has driven the Jews and Americans from his country since they have no other means to procure a subsistance. A good Mohammadan ought not to regret the loss of such luxuries but with this single exception I heard of no complaint against the rule of Dost Muhammad Khan. That chief in common with many of the Afghan nation was addicted in early life to wine and its concomitant vices. His prohibition of them may

be therefore capricious; but he as well as his court held out a bright example to the community. The justice of this chief affords a constant theme of praise to all classes. The peasant rejoices at the absence of tyranny; the citizen at the safety of his home and the strict municipal regulations regarding weights and measures; the merchant at the enquity of the decisions and the protection of his property; and the soldier at the regular manner in which their arrears are discharged. A man in power can have no higher praise. Dost Muhammad Khan has not attained his fortieth year; his mother was persian and he has been trained up with people of that nation, which has sharpened his understanding and given him advantages over all his brothers. One is struck with the intelligence, knowledge and curiosity which he displays, as well as his accomplished manners and address. He is doubtless the most powerful chief in Afghanistan and may yet rais himself by his abilities to a much greater rank in his native country. The differences which exist between Dost Muhammad Khan and his brothers lesson the influence of all parties and would lay open the state to intrigue and faction if invaded. The family of Barakzais have nothing to fear from any other Afghan tribe since they surpass all in numbers as much as in power. The chiefs of Peshawar and Qandahar do not want the wish to injure their brother of Kabul but they cannot accomplish their purpose. Both of them have had a footing in Kabul and look with envy on the prosperity of Dost Muhammad Khan. Both have emissaries at his court who excite disturbance; and both cherish hopes of rooting out one whom they considered a usurper. The task will be found difficult, for the chief of Kabul, besides the moderation and justice which secure him so many friends enjoys advantage in his Persian descent which will prove of material service to him in adversity. He holds the warlike clan of Jawan Sher in his interests and takes every occasion to conciliate this tribe which has no often turned the scale in favour of different pretenders to the throne. He has acquired their language (the Turkish) and promoted their interest and will being.

The Persians of Kabul amount to twelve thousand families; they reside in a separate quarter of the city which keeps up an esprit-de-corps among them; it also given them a knowledge of their power which may prove Salutary or prejudicial to the factions that divide the country according to circumstances. The State of fear which an enemy on both sides must inspire has had a bad effect on Dost Muhammad Khan's administration. With his own house as an object.

ترجمه : "په کال 1826ء کښې کابل د دوست محمد خان چې د وزير فتح خان وروړ وۀ لاس ته راغے او هغه اوس د هغه علاقې حاکم دے. د کابل د اخستو نه پس هغۀ خپلو حکومت نور هم مضبوط او لوے کړے دے. هغۀ د غزني د ښار او د علاقې انتظام د يو وروړ په حواله کړے دے د دې نه سيوا هغۀ بل هيڅوک هم خپل ځان سره په حکومت کښې نۀ شريکوي. د هغۀ د حکومت حدود تر هندوکش او باميان پورې رسيدلي دي. قبلې طرف ته د هغۀ حد د

هزاره د غرونو سره جنګېدلے دے. سهیل طرف ته تر غزني او نمر خاتهٔ طرف ته د نیمله د هغهٔ د حکومت حد تلے دے. د هغهٔ اکثر علاقه د غرونو نه ډکه ده مګر په هغې کښې د کروندې زمکه هم ډېره شته. چې ښهٔ زرخیزه ده. د کروندې دا زمکه د غرونو خوا ته پرته ده او د غرهٔ د نزدې والي په وجه ډېره ښځربه ده. د کابل مالیه قریباً اتلس لکه روپۍ ده. او د هغهٔ فوځي طاقت په پښتنو کښې د ټولو نه زیات دے ځکه چې د کابل سردار یو ښهٔ د اسونو رساله په وسله او په سازوسامان پوره هم شته. علاوه د کلو د لښکر نه او د نور بې قاعدې فوځ نه د هغهٔ د دوؤ زرو سپاهیانو باقاعده یوه پلټن شته. څوارلس توپې هم سره د سازوسامانه هغه لري. دا ملک قدرتي طور باندې مضبوط د غرونو نه ډک دے. اګر چې په هغې کښې ښې ښې لارې هم شته.

لا سرے د هغهٔ علاقې کښې داخل شوے نهٔ وي چې د دوست محمد خان نوم او شهرت هغهٔ ته معلوم شي او د دې شهرت او نوم بل هیڅوک هم د دوست محمد خان نه زیاتي حقدار نهٔ دے. هغه هیچرې هم پخپله د امورو سلطنت په فیصلو کولو کښې نهٔ سترې کیږي او هره ورځ کچرۍ ته سره د قاضیانو او ملیانو د مقدماتو د قانون (شریعت) مطابق د فیصلي کولو دپاره ځي. تجارت د هغهٔ دلاسه ډېره ترقي بیاموندې ده او د دې فائده هغهٔ ته هم رسیدلې ده ځکه چې د ښار محصول قریباً پنځوس زره روپۍ نور زیات شوے دے. او د محصول کل آمدني د هغهٔ قریباً دوه لکه روپۍ سالانه ده. چې څلویښتو کښې یوه روپۍ یعني دوه نیمې روپۍ سیکړه زکات هغه په خپل ټول وطن کښې ټولوي. د دې نه علاوه بل هیڅ ټیکس نشته. او سوداګران اوس د ملک د یو سر نه تر بله سره پورې بغیر د بدرګې یا د نور څهٔ حفاظت نه په امن و امان کښې تلې راتلې شي. حالانکې دومره امن و امان هیچرې په شاهي حکومت کښې هم چا نهٔ وهٔ لیدلے. د کابل دې سردار په مذهبي خیال باندې خپل رعایا د شرابو او د نشې د څیزونو نه منع کړې دي. د دې قانون په وجه یهودیان او ارمینیان چې د هغوي د آمدني ذریعه هم دا وه د ملک په پرېښودو مجبور شو.

سر الیګزنډر برنس مخکښې وائي چې "اګر چې یو نیک مسلمان له د شرابو په ممانعت خفه کیدل پکار نهٔ دي مګر ما د دوست محمد خان خلاف د خاص خلقو د خلو نه بغیر د دې شکایت نه بل څهٔ وانهٔ وریدل.

دوست محمد خان د خپل نوږ قام په شان په ځوانۍ کښې د شراب څښلو عادي وهٔ. مګر د هغهٔ او د هغهٔ د درباریانو د شرابو نه منع کیدل د ټول قام دپاره یوه ډېره اعلیٰ نمونه قائمول دي. د دې سردار د عدل و انصاف صفتونه او قصې په هر طرف او هر قام کښې کیږي. کاشتکاران خوشحاله دي چې ظلم ورک شو. د ښار وسیدونکي په دې خوشحاله دي چې د هغوي بال بچ او کورونه محفوظ دي او د پیمانې او د ټولو قوائینو په ډېر ښهٔ شان

سره نفاذ کيږي. سوداګر په دې خوشحاله دي چې د هغوي مال د غلو د دست برد نه بالکل محفوظ دے او د هغوي د مقدمو فيصلې په ډير انصاف کيږي. د فوځ سپاهي په دې د هغهٔ نه رضا دے چې د هغهٔ تنخواه په خپل وخت هغهٔ ته ورکيدے شي او د يو فرمان روا د دې نه زياتي تعريف نشي کيدے.

د دوست محمد خان عمر لا څلويښتو کالو ته نهٔ دے رسيدلے د هغهٔ مور ايرانی ده او د هغهٔ خپل تربيت هم د ايرانيانو د قوم په سرو کښې شوے دے په دې سبب هغه ډير ذهين دے او پخپلو وروڼو باندې په عقل او تدبر کښې هم فوقيت لري. سړے د هغهٔ عقل، علم او تحقيق کولو شوق ته حيرانيږي. په طرز ګفتګو او په خوش اخلاقی کښې هم هغه طاق دے. دې کښې شک نشته چې په افغانستان کښې د هغهٔ نه زيات طاقتور بل سردار نشته او ډيره ممکنه ده چې د خپل لياقت او قابليت په وجه هغه خپل ځان په خپل ملک کښې د ذې نه هم ډيرې وچتې درجې ته ورسوي.

کومې بې اتفاقی او د کورني ورانی چې د دوست محمد خان د وروڼو په منځکښې پرتې دي هغې د دوئ طاقت بالکل تباه کړے دے او کهٔ چرې چا د هغوي په ملک د بهر نه حمله وکړه نو د دې دشمنو په وجه به په ملک کښې ډيرې پرې او سازشونه پيدا شي. د بارکزو خاندان ته د افغانستان د نورو قبيلو نه هيڅ خوف او خطر نشته ځکه چې په شمار او طاقت کښې هغوي د ټولو نه زيات دي. د پيښور او قندهار سرداران د کابل سردار ته نقصان ورکول غواړي مګر هغوي په دې غرض کښې کامياب دې نشي. دې دواړو سردارانو په يوه زمانه کښې په کابل قبضه کړې وه او په دې وجه هغوي د دوست محمد خان عروج ته د حسد په ستر ګو ګوري. د دوست محمد خان په دربار کښې د دې دواړو سردارانو سړي شته. او هغوي هغهٔ ته د فساد پيدا کولو هروخت کوشش کوي. مګر دا د هغوي دپاره ډير مشکل کار دے. ځکه چې سردار کابل ته علاوه د دې نه چې د انصاف او اعتدال په وجه د هغهٔ دوستان ډير دي يوه غټه فائده دا هم ده چې د هغهٔ ايرانيانو سره خپلوي ده. او دا څيز به د هغهٔ د مصيبت په وخت کښې ډير پکار راشي. هغه د جوان شيرو جنګجو قبيله خپله پره کښې ساتي او هغوي د رضا ساتلو هميش کوشش کوي. ځکه چې دا قبيله د کوم بادشاه ملګرے شوې ده نو هغهٔ برے بياموندې دے. هغهٔ د هغوي ژبه چې ترکي ده هم زده کړې ده او هغوي ته د هر قسم ښيګړې رسوي... د کابل ايرانيان قريباً دولس زره کوره دي. هغوي د ښار په يوه بيله حصه کښې وسيږي او په دې وجه د هغوي عزيزولي په خپل منځکښې ډيره ښه ده. هغوي د خپل اتفاق په زور او طاقت باندې ښهٔ واقف دي. او هغوي ته علم دے چې کومې ډلې سره به مونږ شامليږو هغه به کاميابيږي. او دوست محمد خان نه دواړه طرف ته دشمنان پراتهٔ دي او د هغوي د ويرې په وجه د خپل حکومت انتظام پوره طور سر ته نشي

رسولے. چونکي هغهٔ سره اکثر د خپل فوځ فکر وي د دې کبله دوست محمد خان د بيروني ملکونو تسخير ته يا د کابل تير شوي شان اقتدار او عروج واپس کولو ته متوجه کيدے نشي. هـم د دې کـورنـۍ د ورانـو پـه وجه هغه په هرات باندې حمله نشي کولے چې ټول افغانستان کښې هـم دغـه يو ځاے دے چې د شاهي خاندان د حکومت لاندې دے. کامران هغلته په دې وجـه حـکومت نهٔ کوي چې ګني د هغهٔ خپل زور يا طاقت شته. بلکې په دې وجه ئ کوي چې په هغه لا خپلو دشمنانو حمله نهٔ ده کړې.

کـامـران تـه د خپل ملک خلق هيڅ قسم امداد نهٔ ورکوي ځکه چې د افغانستان ټول سـرداران د هـغهٔ دشمنان دي او د فتح خان د قتل په بدل کښې د هغهٔ ورکيدل غواړي. هرات هـم په دې وجه د ايران يوه باجګزاره صوبه شوې ده او څو څو ځله د ايران فوځونه د هرات په قـلـعـه کښې رانـنـوتي دي مګر د خراج په ادائيګۍ باندې خلق د هغوي د لاسه خلاص شوي دي. د هغهٔ هيڅ سياسي تعلقات چا سره نشته مګر تراوسه پورې هغه دې اميد پورې نښتے دے چـي زهٔ بـه بيـا د خپـل پـلار حکومت په افغانستان کښې قائم کړم. کامران په ځان کښې د يو ظـالـم او سـفـاک انسـان خـويـونـه لري. د هغهٔ هيڅوک هم دوستان نشته او د خپلو وطنيانو سخت بدي شي.

لکه چې څرنګ دوست محمد خان د خپلې کورنۍ بې اتفاقۍ او د جګړو په سبب په هـرات حـمله نشي کولے هم دغه رنګ هغه د ملتان او ډيره غازي خان د سکهانو نه د اخستلو کـوشـش نشـي کـولـے. سر جان کے د دوست مـحـمـد خان د اخلاقو متعلق دا شان رائ ظاهره کړې ده:

" And now was it that Dost Muhammad began fully to understand the responsibilities of high command and the obligations of a ruler both to him self and his subjects. He had hitherto lived the life of a dissolute soldier. His education had been neglected and in his very boyhood he had been thrown in the way of pollution of the foulest kind. From his youth he had been greatly addicted to wine and was often to be seen in public reeling along in a state of degrading intoxication or scarcely able to keep his place in the saddle. All this was now to be reformed he taught himself to read and to write accomplishments which he had before, if it at all; Scantily possessed. He studied the Quran, abondoned the use of strong liquors, became scrupulously abstaneous, plain in his attire, assiduous in his attention to business urbane, and courteous to all. He made a public acknowledgment of his past errors and profession of reformation, and did not believe by his life the promises which he openly made.

It is not to be questioned that there was at this time, in the conduct of Dost Muhammad Khan, as a ruler, much that may be regarded with admiration and respect even by christian men. Success did not distrub the balance of his mind, nor

power harden his heart. Simple in his habits, and remarkably affable in his manner, he was accessible to the meanest of his subjects. Ever ready to listen their complaints and redress their grievances, he seldom rode abroad without being accosted in the public streets or high ways by citizen or by peasant waiting to lay before the Sardars a history of his grievances or his sufferings and to ask for assistance or redress. And he never passed the petitioner- never rode on but would rein in his horse, listen patiently to the complaints of the meanest of his subjects, and give direction to his attendants to take the necessary steps to render justice to the injured, or to alleviate the sufferings of distressed. Such was his love of equity, indeed, that people asked, " Is Dost Muhammad dead that there is no justice?"

ترجمه : او دغه وخت وۀ چې دوست محمد خان د خپل لوي حکومت هغه ټولې ذمه وارۍ او د فرمانروايي هغه کل فرائض محسوس کړل. چې کوم په هغۀ باندې د خپل رعايا او د خپل ځان د طرف نه عائد کيدل. تر دې وخته خو هغۀ د يو اوباش سپاهي په شان ژوندون تير کړے وۀ د هغۀ تعليم ته هډو چا توجه نۀ وه کړې او د هلکوالي نه هغه د ګنده نه ګنده پليتو کښې پريوتے وۀ. هغه د ځوانی نه په شرابو عادت شوے وۀ او اکثر به په خلقو کښې ښکاره د نشې نه بيهوشه او چور په تلو ليدے شو او لا به ئ ځان په مشکله په زين ټينګولے شو. د دې ټولو عادتونو نه هغۀ اوس لاس په سر کړل. اول خو هغۀ ليکل او لوستل زده کړل چې کۀ وړومبے ترينه بالکل بې بهره وۀ نو ښۀ ئ زده هم نۀ وو. بيا هغۀ د قرآن مطالعه وکړه. د شرابو څښل ئ قطعاً بند کړل او د نشې د څيزونو نه ئ ځان بالکل خلاص کړو. په وضع قطع کښې بالکل ساده او د حکومت په کار کښې سخت محنتي شو او ټولو خلقو سره خوش خلقه او ملائم طبع وۀ. هغه به د عامو خلقو په مخکښې د تيرو شوؤ ګناهونو اقبال او د مخکښې دپاره د توبې اظهار کولو. او کوم لوظونه چې هغۀ د خلقو په مخکښې دا شان وکړل نو پخپل ژوندون ئ ټول پوره کړل. دې کښې شک نشته چې په دې زمانه کښې د دوست محمد خان ژوندون په حيثيت د يو فرمانروا دا شان قابل قدر او قابل تعريف وۀ چې د عيسائي مذهب خلق هم په هغۀ قائل وو. کاميابی د هغۀ د طبيعت په توازن کښې څۀ فرق رانۀ وستے شو او نۀ اختياراتو هغه سنګدل کړو. په خوئ بوئ کښې ساده او په اخلاقو کښې ډير ملائم وۀ د غريب نه د غريب سړي هم هغۀ ته رسائي وه. هميشه به هغۀ د هغوي فريادونو ته غوږ کښيښودو او د هغوي دادرسي به ئ کوله. چرې به چې هغۀ بهر په سورلی ووتو نو ځوک نه ځوک زميدار يا د ښار سړے به په عامه کوڅه يا په لويه لار کښې ورته په انتظار کښې ولاړ وۀ او هغۀ ته به ئ د خپلو فريادونو او د تکليفونو داستان واورولو او د هغۀ نه به ئ دادرسي او امداد غوښتلو. او هيڅ کله به هغۀ د سائل نه مخکښې نۀ تيريدلو بلکې د اس واګې به ئ راښکلې او په ډير صبر به ئ د ادنیٰ نه ادنیٰ سړي فرياد واوريدلو او بيا به ئ خپلو حاضرو ملازمانو ته د مظلوم د دادرسی او مصيبت وهلي نه د تکليف د لرې کولو دپاره ضروري

هـدايات صادر کړل. حقيقت دا دے چې د عدل و انصاف سره د هغهٔ دومره مينه وه چې خلقو په طور دا وينا کوله چې "ولې دوست محمد خان مړ شو چې انصاف نشته."

د افغـانسـتـان د مـلـک اندروني حالت دا وهٔ چې کندل خان، مهردل خان او رحمدل خان د قندهار په علاقه کښې دوست محمد خان په کابل، غزني او جلال اباد کښې او سلطان مـحـمد خان په پيښور کښې حکومت کولو. چې شاه شجاع د کافي مودئ د انتظار نه پس بيا د دوسـت محمد خان د روز افزون طاقت نه ويريدو او دا خيال ئې وکړو چې کهٔ نور صبر کوم نـو د دوست محمد خان طاقت نور هم زياتيږي. او زما د کاميابۍ په اميدونو باندې سړې اوبهٔ توئيږي. نو هغهٔ په قندهار باندې سمدستي د حملې کولو دپاره رارawan شو.

په ستمبر کال 1832ء کښـې کومه حمله چې شهزاده عباس د هرات د اخستو دپاره کـړې وه هـغـې حـمـلـې او په ايران او نور وسطي ايشيا کښې د روس پيشقدمو انگريزان ډير سـخـت ويـرولـي وو چنانچه د دې ذکر وړومبے هم شوے دے. نو د واقعاتو د صحيح اندازې لـگـولـو دپـاره گورنر جنرل هند لارډ آکلينډ Lord Auckland د انـگـلـستان د حکومت د هداياتو مطابق هم دغه سر اليگزنډر برنس چې په هغه موده کښې لفټيننټ برنس وهٔ او کيپټن کـنـولي د وسط ايشيا او د افغانستان د هغه وخت د سياسي واقعاتو د تحقيق او په هغهٔ باندې د مـفـصل رپورټ کولو دپاره مقرر کړل. چنانچه لفټيننټ برنس د دهلي نه افغانستان، بخارا او ايـران تـه لاړو او کيـپـټـن کـنـولي د سينټ پيټرزبرگ چې اوس ورته لينن گراډ وئيلے شي د کـرغـيـزيـانـو د تـر کستـان او د ايران سفر وکړو او مفصل کتابونه ئې په ايشيا کښې د روس د سيـاسـي ارادو متعلق وليکل. هم په دې سبب د هندوستان انگريزي حکومت سره دا ډير فکر وهٔ چې د افـغـانستان حکومت دې د يو داسې سړي په لاس کښې وي چې هغه بالکل زمونږ د تسـلـط او د اثر و رسوخ د لاندې وي ځکه چې په هندوستان باندې د روس د حملې کولو لار هم په افغانستان کښې تيريږي نو په دې وړخو کښې د دې دواړو سلطنتونو انتهائي کوشش دا وهٔ چې پـه وسـطـي ايشيا کښې هغوي خپل خپل اقتدار زيات کړي له دې کبله څهٔ وخت چې شـاه شجاع افغانستان باندې بيا د حملې کولو نيت ظاهر کړو نو انگريزانو هغهٔ له په پټه امداد ورکولو.

فيـريـر وائـي چـې "د انـگـريـزانـو دا منشا وه چې په افغانستان کښې يو داسې سړے بـادشـاه وي چـې هـغـه زمـونـږ پـه رائ او پـه ډله وي مگر چونکې هغوي په ښکاره باندې شاه شـجـا ع له د امداد ورکولو نه ويريدل په دې سبب د هندوستان گورنر جنرل هغهٔ له د سکهانو د پـلـټـنو په ذريعه امداد ورکړو. رنجيت سنگهـ د گورنر جنرل په اشاره شاه شجاع له دا فوځ پـه دې اقـرار ورکـړو چـې د کـاميابۍ نه پس به هغه د دې امداد په عوض کښې ماله د پيښور عـلاقـه راکـوي. دا واقـع د سـر کـلائيد ويډ چې په هغه زمانه کښې په لدهيانه کښې انگريزي

پولیټیکل ایجنټ وُ د هغهٔ د خطونو نه ثابتیږي چې کوم د شاه شجاع د شکست نه پس د هغهٔ د سامان نه راوتي وو. په دې کښې ډېر خطونه داسې وو چې د پښتنو سردارانو ته لیکلي شوي وو. دې انګریز پولیټیکل ایجنټ دي سردارانو ته د بغاوت کولو لمسه ورکړې وه. او هغوي ته ئې دا یقین ورکړے وُ چې زمونږ ګورنمنټ به ستاسو د هغه خدمتونو قدر کوي چې کوم تاسو شاه شجاع سره د هغهٔ په تخت نشیني کښې وکړئ.

د دې تاریخ لوستونکو ته به دا خبره ظاهره وي چې د انګریزانو د حکومت دا رویه د دوست محمد خان پحقله د هر قسم اخلاقو خلاف وه. نهٔ خو دوست محمد خان د انګریزانو دشمن وُ او نهٔ هغهٔ حکومت هند له د خپل ځان خلاف د ناراض کیدو څهٔ موقع ورکړې وه. مګر انګریزانو د خپل غرض د ویستو دپاره دا ناجائز او ناروا کار د دوست محمد خان خلاف وکړو.

په جنوري کال 1833ء کښې شاه شجاع د لدهیانې نه راروان شو. په مئ کښې د دریائے سندهـ نه پورې وتو او په شکارپور باندې ئې چې د میران سندهـ علاقه وه قبضه وکړه. د سندهـ په علاقه کښې د راننوتو نه پس شاه شجاع د میران سندهـ نه په دې بنا باندې د یو لوے رقم مطالبه وکړه چې تاسو د افغانستان د حکومت باجګزار یئ. میران سندهـ انکار وکړو او شاه شجاع هغوي سره جنګ ته تیار شو. چنانچه د روهړي په مقام باندې په جنوري کال 1834ء کښې د شاه شجاع او د میران سندهـ فوځونه مقابل شول. سندهیانو شکست وخوړو او شاه شجاع ته ئې د مطلوبه رقم ادا کولو اقرار وکړو. د دې نه پس هغه قریباً دوه ویشت زرو پښتنو او هندوستانیانو سره د قندهار په طرف پیش قدمي وکړه. د هغهٔ هندوستاني فوځ په یورپین قواعدو باندې تیار شوے وُ او په هغې کښې څهٔ داسې یورپین افسران هم وو چې چا د کمپني ملازمت پریښودې وُ او د هغهٔ سره ملازمان شوي وو.

په قندهار کښې کندل خان هم د مقابلې دپاره تیاری وکړې او څهٔ فوځونه ئې خوجک کوتل درې ته د هغهٔ د منع کولو دپاره واستول. دا دره ډېره مضبوطه وه. مګر شاه شجاع هم د خپل ملک د غرونو نه په ښهٔ شان سره واقف وُ. هغهٔ دا شان چل وکړو چې څهٔ فوځ ئې د کندل خان د لښکر مخکښې پریښودو او باقي فوځ ئې په بله لاره د کندل خان شا ته واستولو. کندل خان چې خبر شو نو فوراً واپس شو او قندهار ته وتښتیدو. د هغه ځاے نه هغهٔ دوست محمد خان ته قاصد واستولو او د ټول احوال نه ئې خبردار کړو او د هغهٔ نه ئې امداد وغوښتو. دوست محمد خان هغهٔ ته په جواب کښې دا شان ولیکل:

"هر کله چې په تا د دې قسم تنګسیا راځي نو ما سمدستي خبروه او لکه چې څومره تهٔ زما دشمني کوے هم دومره به زهٔ تا سره نیکي کوم." پس هغه د خپل ورور د امداد دپاره تیار شو مګر د کابل نه د روانیدو نه وړومبے هغهٔ دا شان چل وکړو چې هغهٔ خپل یو افسر،

سر کلاډ ویډ ته هم د دې خبرې د تپوس کولو دپاره واستولو چې آیا انګریزي حکومت د شاه شجاع امداد په ښکاره باندې کوي او که نه؟ نو که انګریزان د هغهٔ په امداد کښې وي نو چې زهٔ یو ځل بیا فکر وکړم. ولې که چرې انګریزان د هغهٔ په مرسته ولاړ نهٔ وي نو چې زهٔ هغهٔ سره جنګ وکړم. د کمپنی پولیټیکل ایجنټ ورته په جواب کښې ووئیل چې په دې فوځ کښې زمونږ څهٔ حصه نشته مګر شاه شجاع سره زمونږ همدردي او روغ نیت ملګرے دے.
فیریر وائي چې " شاه شجاع سره د انګریزانو روغ نیت او همدردی دوست محمد خان د جنګ کولو نه منع کړو." دوست محمد خان د سر کلاډ ویډ د جواب په انتظار خپل فوځونه لا قندهار ته نهٔ وو روان کړي مګر هر کله چې هغهٔ له دا مشکوک جواب راغے نو هغه ډیر په شتاب باندې قندهار ته روان شو. د شاه شجاع فوځونه دا وخت قندهار ته رارسیدلي وو او د ښار محاصره ئې شروع کړې وه. د شاه شجاع او د کندل خان د فوځونو په مینځکښې ډیرې خونریزې معرکې وشوې. لږې ورځې پس د شاه شجاع فوځ قدرتي طور ستړے ستومانه شو. اګر که د خپل فوځ د تعداد او د تنظیم په وجه هغهٔ د کندل خان لښکر هم ډیر تنګ کړے وهٔ. چې شاه شجاع تنګ شو نو اخر په نهٔ ویشتم جون 1834ء په قندهار باندې د عامې حملې حکم ئې وکړو. دې کښې شک نشته چې د هغهٔ فوځونه په ښه بهادری وجنګیدل. مګر هر ځل د کندل خان قلعه بند فوځ د هغوي حملې پسپا کړې. اخر د شاه شجاع فوځونو زړهٔ بائلو او په وروستو کیدو باندې مجبور شول. او د ښار نه چارچاپیره خندقونه د هغهٔ د فوځ د مړو نه ډک شو. عین په دې موقع د دوست محمد خان فوځ راورسیدو نو بیا شاه شجاع په دوه طرفه مقابلې کولو باندې مجبور شو. قریباً څلور پنځوس ورځې هم په دې شان د فریقینو په مینځکښې جنګ وشو.
مؤرخین وائي چې قریباً شپاړس زره خلق په دې جنګ کښې د فریقینو نه مړهٔ شول. د شاه شجاع د فوځ سپه سالار کیمبل نومے یو انګریز وهٔ او دوست محمد خان خپل فوځونه پخپله جنګول. په اخري ورځو کښې دوست محمد خان په ډیر شجاعت یوه ورځ د شاه شجاع په فوځ حمله وکړه. شاه شجاع هم په هاتي سور پخپله د فوځ کمان واخستو. او فریقینو د بهادری داد ورکړو. کیمبل په دې جنګ کښې سخت زخمي شو او ګرفتار شو. د شاه شجاع فوځ د ټولې ورځې د جنګ نه پس اخر شکست وخوړو او پخپله هغه فراه ته وتښتیدو. د هغه ځاے نه هغهٔ کامران ته د امداد دپاره سوال وکړو مګر کامران نهٔ خو د هغهٔ امداد وکړو او نهٔ ئې هرات ته پریښودو. دې تیښته کښې شاه شجاع ته قسما قسم تکلیفونه پیش شول. بې یاره او بې دوسته د هاړ پشکال په ګرمی کښې شپه او ورځ د بلوچستان په ریګستانونو کښې وږے تږے د یو ځاے نه بل ځاے ته تښتیدو. دې خوا د بارکزو فوځونو هم د هغهٔ تعاقب کولو او قریب وه چې دا هغوي په لاس ګرفتار شوے وے مګر هغهٔ په څهٔ شان

ځان قلات نصیر ته ورسوۀ او بلوچو ته ئ ځان وسپارلو.

د قلات نصیر سردار هغۀ له ډیره په عزت پناه ورکړه او لدهیانې ته ئ په قدر او احترام سره واستولو. په دې ځایے کښې هغۀ بیا انګریزانو سره شړونکے شو. او هغوي ځان سره د افغانستان په سیاسي چالونو کښې د استعمالولو په غرض وساتلو. د قندهار په جنګ کښې په دې موقع د دوست محمد خان د طرف نه د هغۀ زوي محمد اکبر خان په ډیر قابلیت او هوښیارتیا د خپل پلار فوځونه جنګولي وو. دا وړومبے لوے جنګ وۀ چې پکښې اکبر خان نۀ صرف د ذاتي زړورتیا ثبوت ورکړو بلکې خپل ځان ئ په فنون جنګ کښې هم ماهر ثابت کړو.

څۀ وخت چې دوست محمد خان په قندهار کښې مشغول وۀ نو رنجیت سنګهـ د سلطان محمد خان په مشوره هري سنګهـ د نهو زرو سکهانو سره پیښور ته په کابل د حملې کولو په غرض راواستولو. دا ټول تجویز رنجیت سنګهـ ته سلطان محمد خان ورمخکښې کړے وۀ. څۀ وخت چې هري سنګهـ پیښور ته رانوتلو نو سترګې ئ بدلې کړې او په پیښور باندې ئ پخپله قبضه وکړه او سلطان محمد خان ئ جلال اباد ته سره د نورو دوؤ وروڼو وشړلو. دغه شان هغوي ته خدائے تعالیٰ د خپلې درغلۍ او قوم سره د غدارۍ سزا ورکړه.

په جلال اباد کښې هغوي په دې انتظار کښیناستل چې کۀ چرې دوست محمد خان د شاه شجاع نه شکست وخوړو نو مونږ به په کابل باندې قبضه وکړو. او د دې غرض دپاره هغوي د لښکر تیارۍ هم شروع کړې. مګر ډیر زر هغوي له د دوست محمد خان د فتح خبر راورسیدو. اوس هغوي د کابل د فوځ کشۍ نه پاتې شول. او دوست محمد خان سره ئ د روغې کولو کوشش شروع کړو. چنانچه هغوي کابل ته هغۀ له وړومبے د مبارکۍ دپاره لاړل. دوست محمد خان اګر چې د هغوي په نیتونو ډیر ښۀ خبر وۀ مګر د خپلو وروڼو په منځکښې د نورې بې اتفاقۍ د ویرې نه هغۀ د هغوي د سازشونو څۀ پروا ونۀ کړه. او د هغوي د رضا ساتلو دپاره ئ هغوي سره ډیر ښۀ سلوک وکړو. هر کله چې دوست محمد خان د قندهار نه کابل ته واپس شو او د پیښور د حال نه خبر شو نو سمدستي ئ د پیښور د علاقې د اخستو دپاره تیارۍ شروع کړې مګر د هغۀ دا خیال وۀ چې قبل د دې نه چې زۀ خلقو ته په دې مهم کښې د عام شمولیت درخواست وکړم زۀ ځان له د مشرۍ څۀ لقب اختیار کړم. د قام خلقو هم هغۀ له دا مشوره ورکړه او سردارانو او علماؤ ورته دا ووئیل چې بغیر د یو لقب د اختیارولو نه پښتانۀ په تا نۀ شي راټولیدې چونکې په دې زمانه کښې د افغانستان په ټوله علاقه ماسوائ د هرات نه د هغۀ اقتدار وچت وۀ او هیچا هم د دې تجویز مخالفت نۀ کولو. هغۀ دا موقع ډیره مناسب وګڼله. مګر څۀ وخت چې خلقو هغۀ ته دا ووئیل چې تۀ د شاه لقب اختیار کړه نو هغۀ په جواب کښې ووئیل چې زۀ دومره غریب یم چې د سردارۍ درجه هم

نشم سنبالولې نو ځان ته شاه وئيل خو به سخته غلطي وي. پس هغهٔ د قام د مشرانو په صلاح ځان دپاره د امیرالمؤمنین لقب اختیار کړو او میر واعظ د کابل هم په هغه طريقه چې په کومه احمد شاه او د هغهٔ زامن تخت نشين شوي وو د دوست محمد خان تاجپوشي په يو لوې دربار کښې چې په هغې کښې د قام ټول سرداران او لوي لوي خلق شامل وو په کال 1834ء کښې وکړه.

د تخت نشيني نه پس د دوست محمد خان وړومبے کار دا وهٔ چې د کومو کورنرانو او حاکمانو په ايمانداري کښې هغهٔ ته شک وهٔ نو هغه ئې معزول کړل او د هغوي په ځاے ئې خپل زامن حاکمان کړل. او بيا ئې د خپل نوم ضرب جاري کړو. د دې انتظامي امورو نه پس هغهٔ لس زره سوارهٔ د سلطان محمد خان د مشرى د لاندې د پيښور د اخستو دپاره وليږل. سلطان محمد خان سره نهٔ خو د پښتنو کوم فکر وهٔ او نهٔ د افغانستان د نيکنامي. د هغهٔ منشا خو صرف خپل ذاتي اغراض وو او د دې مطلب په حاصلولو کښې د هيڅ اصول پابند نهٔ وهٔ. دا فوځ پيښور ته په کال 1835ء کښې راروان شو او د رنجيت سنگهه په کيمپ کښې د دوي د راتللو نه ډير هيبت او تزلزل پيدا شو مگر چې څهٔ موده تيره شوه او سلطان محمد خان څهٔ قابل ذکر کاميابي حاصله نهٔ کړه نو رنجيت سنگهه او د هغهٔ فوځونه ډير زړور شو. په دې وجه امير دوست محمد خان پخپله د کابل نه يو لوے لښکر سره د پيښور په لوري راغے. او د فوځ سالاري ئې پخپل لاس کښې واخسته. د هغهٔ په راتللو د پښتنو په فوځ کښې يو نوے جوش او جذبه پيدا شوه او د رنجيت سنگهه بالکل وار پار خطا شو. ولې اوس رنجيت سنگهه د سلطان محمد خان د کمزورو نه د فائدې وچتولو اراده وکړه. او هغهٔ او د هغهٔ وروڼو سره ئې پټ ساز باز شروع کړو. رنجيت سنگهه د صلح کولو په بهانه خپل لوي لوي افسران فقير عزيزالدين او جنرل هارلان د امير دوست محمد خان کيمپ ته په ظاهره خو د صلح د شرطونو د فيصله کولو په غرض مگر په اصل کښې سلطان محمد خان او د هغهٔ وروڼو له د رشوت ورکولو دپاره راوليږل. دوست محمد خان هم په هغهٔ خبر شو او قريب وه چې هغوي ئې ټول گرفتار کړي وړے مگر سلطان محمد خان ورته په قرآن قسم وخوړو چې زهٔ به د صلح کوشش کوم. نو دوست محمد خان هغوي پريښودل. او دغه شان هغهٔ بيا دوست محمد خان له دوکه او فريب ورکړو. اخر هم د دغه کورنۍ بې اتفاقو او د لستوني د مار په وجه د هغهٔ فوځونه کميدل شروع شو او دوست محمد خان بې جنگه خفه او دلگيره په يولسمه مئ 1835ء کښې واپس کابل ته لاړو. د دې خدماتو په عوض کښې رنجيت سنگهه سلطان محمد خان له د روهتاس د قلعه گورنري ورکړه او څهٔ رعب او ويره چې د سکهانو په زړهٔ کښې د دوست محمد خان په وجه پيدا شوې وه هغه ټوله لرې شوه. د دوست محمد خان د کيمپ د ورانوالي متعلق جنرل هارلان په خپل قلم دا شان ليکلي دي:

" On the occasion of Dost Muhammad Khan's visit to Peshawar, which occurred during the period of my service with Ranjeet Singh. I was dispatched by the Prince as Ambassador to the Ameer. I divided his brothers against him, exciting their jealousy of his growing power, and exasperating the family feuds with which, from my previous acquaintance, I was familiar and stirred up the feudal Lords of his Darbar, with the prospects of pecuniary advantages. I induced his brother, Sultan Muhammad Khan, the lately deposed Chief of Peshawar, with 10000 retainers, to withdraw suddenly from his camp, about night fall. The Chief accompanied me towards the Sikhs camp, whilst his followers fled to their mountain fastnesses. So large a body retiring from the Ameer's control, in opposition to his will and without previous intimation, threw the general camp into enextricable confusion, which terminated in the clandestine rout of his forces, without beat of drum, or sound of bugle, or the trumpet's blest, in the quit stillness of midnight. At daybreak no vestige of the Afghan camp was seen, where six hours before 50000 men and 10000 horses, with all the busy host of attendants, were rife with the tumult of wild emotion."

ترجمه : "په کومو ورځو کښې چې دوست محمد خان پېښور ته راغلے وۀ او زۀ د رنجيت سنگهه په ملازمت کښې وم نو زۀ رنجيت سنگهه هغۀ له په طور د سفير وليږلم. ما د هغۀ وروڼه هغۀ سره بې اتفاقه کړل. او د هغوي په زړونو کښې مې د هغۀ د روز افزون طاقت متعلق حسد پيدا کړو او کومې د کورنۍ جګړې چې ماته د وړومبے نه معلومې وے چې په هغوي کښې پرتې دي هغه مې نورې هم رادوڅاره کړې. او د هغۀ د دربار د لويو لويو سردارانو په زړۀ کښې مې د روپو لالچ راوچت کړو. ما د هغۀ ورور سلطان محمد خان چې د لږو ورځو نه د پېښور د حکومت نه برطرف شوے وۀ ته دا ووئيل چې کۀ چرې تۀ ناساپي په تيارۀ کښې د دوست محمد خان د کيمپ نه وتښتې نو تا له به لس زره ملاتړ درکړم. په دې باندې دا سردار پخپله خو ماسره د سکهانو کيمپ ته را روان شو او د هغۀ لښکر غرونو ته وتښتيدو. هر کله چې دومره لوے لښکر د امير صاحب د رضا نه خلاف او د هغۀ په بې خبرۍ کښې د هغۀ د قابو نه وتښتيدلو نو په ټول کيمپ کښې سخت اړے ګړے پيدا شو او په اخر کښې د هغۀ خپل فوځ هم بغير د ډول د وهلو، د بګل د غړولو او د تورۍ د اواز نه د نيمې شپې په چپه چپيا کښې پټ په پټه خور وور شو. چې سبا کيدو نو د پښتنو د فوځ نښه هم نۀ وه پاتې. او په کوم ځاے کښې چې شپږ ګينټې وړومبے پنځوس زره سړي او لس زره اسونه او د هغوي سره د نوکرانو او د ملاتړو لوے هجوم او شور شر وۀ هغه ځاے کښې بني ادم په نظر نۀ راتلو."

دوست محمد خان کابل ته خو لاړو مګر د پېښور د اخستو خيال د يوې لحظې دپاره هم د هغۀ د زړۀ نه نۀ وتلو. د پېښور ټوله علاقه د پښتنو نه اباده وه او هغۀ په هيڅ وجه دا برداشت کولې نشوه چې پښتانۀ دې د سکهانو د حکومت د لاندې وسيږي. هغۀ اوس شپه او

ورځ د پیښور د اخستو په فکر شو. او هر طرف نه ئ د امداد د اخستو دپاره سعي وکړه. دې خوا هري سنگهـ چي په پیښور کښې د رنجیت سنگهـ گورنر وۀ د پښتنو د دې کورنو جگړو په وجه ډیر زړور شو او قسم قسم ظلمونه ئ په پښتنو باندې شروع کړل. دا خلق به ټول امیر له په فریاد باندې ورتلل او هغۀ ته به ئ په سکهانو باندې د فوځ کشی درخواست کولو. اخر کار امیر صاحب بیا نوے فوځ تیار کړو او د محمد اکبر خان او محمد افضل خان چې د هغۀ زامن وو د سالارۍ د لاندې ئ د پیښور په طرف راولیږلو. دا فوځ په درۀ خیبر باندې رانوتو او په جمرود کښې ئ په سکهانو حمله وکړه. سکهان هم په ډیر تعداد کښې د مقابلې دپاره د وړومبے نه ناست وو. اکبر خان په یکم مئ 1837ء د جمرود محاصره وکړه. هري سنگهـ د پیښور نه د خپل فوځ د امداد دپاره ورغے او د پښتنو په فوځ باندې ئ حمله وکړه. د دواړو فوځونو په منځکښې سخت جنگ وشو. هري سنگهـ په دې جنگ کښې قتل شو او سکهان د جمرود نه وتښتیدل.

دوست محمد خان په هیڅ وخت کښې دا نۀ غوښتل چې سکهانو سره دې زۀ جنگونه وکړم نو هغۀ وړومبے لارډ آکلینډ گورنر جنرل هندوستان ته یو خط ولیکلو چې تۀ زمونږ او د سکهانو تر منځه ماته د فیصلې دپاره یوه لار وښیه چې زۀ په هغې عمل وکړم. لارډ آکلینډ د امیر دوست محمد خان د زور او د اقتدار د زیاتیدلو سخت خلاف وۀ او د پښتنو په هندوستان بلندې د حملې کولو بۀ هر وخت د هغۀ په وړاندې وۀ. هغۀ د دوست محمد خان د خط په دویشتم اگست 1836ء کښې صرف دومره جواب ورکړو چې " د انگریزانو اصلي مقصد خو تجارت او صنعت له ترقي ورکول دي د هغوي دا قاعده نۀ ده چې هغوي د یو بل خودمختار حکومت په معاملاتو کښې دخل ورکړي." هغۀ دا هم دوست محمد خان ته ولیکل چې زۀ به ډیر زر ستا دربار ته خپل یو افسر په تجارتي معاملاتو باندې د خبرو اترو کولو دپاره درلیږم.

د لارډ آکلینډ دا جواب دوست محمد خان ته دا ظاهره باهره د حکومت برطانیه د خپل عمل نه چې کوم هغوي په هندوستان کښې د تجارت او صنعت له د ترقي ورکولو په بهانه کړے وۀ غلط ثابتیدلو. د هندوستان ټول ملک هغوي د یو لا د بل حکومت په معاملات کښې د دخل ورکولو په ذریعه لاندې کړے وۀ او هغوي ته سیاسي اقتدار او د ملکونو اخستل د خپل تجارت د زیاتولو دپاره ضروري ښکاره کیدل. مگر اصلي خبره دا وه چې هغوي د پیښور په علاقه باندې د دوست محمد خان تسلط د خپلې فائدې دپاره په نسبت د رنجیت سنگهـ زیات خطرناک گڼلو. له دې کبله هغوي د پیښور په معامله کښې د غیر جانبدارۍ بهانه وکړه. مگر دوست محمد خان دا شان ساده نۀ وۀ چې په دې خبرو غولیدلې وے. تر اخره پورې هغه په دې کوشش کښې لگیا وۀ چې انگریزان دې ماله پیښور د سکهانو نه

واخلي.

لارډ آکلینډ د خپل جواب مطابق څۀ لږه موده پس برنس، میجر لیچ، لفټیننټ ووډ او ډاکټر لارډ په ظاهره خو په تجارتي معاملات باندې د بحث کولو دپاره مگر په اصل کښې د سیاسي خبرو اترو په غرض د دوست محمد خان دربار ته ولیږل. د دې مشن مشر سر الیګزنډر برنس وۀ او هغوي سره موهن لعل نومې یو کشمیرې پنډت په طور د میر منشي تللې وۀ. هرکله چې دا مشن په درۀ خیبر ورننوتو نو د امیر صاحب د طرف نه شاه غاضي ګل، مرزا آغا جان، او سعادت خان د بر مومندو خان د هغوي استقبال وکړو او د توپو سلامي ورته وشوه. لږ وړاندې محمد اکبر خان د دوست محمد خان زوې پخپله ډیوې رسالې سره په ډیر شان و شوکت د هغوي استقبال وکړو. او خپل څان سره ئې هم په هغه هاتي باندې سور کړو چې په کوم هغه پخپله سور وۀ. په یویشتم ستمبر 1837ء امیر صاحب مشن سره په عام دربار کښې ملاقات وکړو. او برنس امیر صاحب ته د ګورنر جنرل آکلینډ خط ورکړو چې هغۀ پخپله پرانستو او د هغۀ وزیر عبدالسمیع په وچت اواز ولوستو. د خط مضمون حسب ذیل وۀ:

**The Earl of Aukland to the Amir Dost Muhammad Khan,**




**Fort William,**

**15th May, 1837**

**(After compliments)**

In my letter to your address, dated 22nd August 1836, I intimated my intention of deputing an officer to confer with you as to the best means of promoting the interests of commerce, and faciliating the intercourse of traders between India and Afghanistan.

To your enlightened mind it cannot fail to be obvious, that commerce is the basis of all national prosperity and that is commerce alone that enables people of one country to exchange its superfluous commodities for those of another; to accumulate wealth, and to enjoy all the comforts and blessing of civilized life.

The general diffusion of these blessings and comforts among neighbouring nations is the general object of the British Govt;. It seeks for itself no exclusive benefits, but it ardently desires to secure the establishment of peace and prosperity in all countries of Asia.

With this view the British Govt; prevailed upon the powers occupying the Banks of the River to open navigation of the Indus; and to this object, indeed, have all its efforts been invariably directed.

I now send Sir Alexander Burns, who will deliver this letter to cofer with you as the best means of facilitating commercial intercourse between Afghanistan and

India. I have no doubt that he will meet with friendly reception at your Court and that his personal communication with you will be attended with all the advantages which I anticipate.

In conclusion, etc,

Sd /xxx

Aukland

ترجمه : منجاب ارل آف آکلینډ په خدمت کښې د امیر دوست محمد خان

فورټ ولیم 15 مئ 1836ء

پس د سلامونو نه،

کوم خط چې تا ته ما په دویشتم اګست 1836ء لیکلے وؤ په هغې کښې ما دا اراده ظاهره کړې وه چې زۀ به یو افسر د دې غرض دپاره درلیږم چې تاسره د تجارت د ترقۍ، او د افغانستان او د هندوستان تر منځه د سوداګرانو دپاره د تګ راتګ سهولتونو پیدا کولو دپاره خبرې اترې وکړې.

ستا روشن ضمیر نه دا خبره پټه نۀ ده چې تجارت د هر قسم قومي دولت بنیاد دے او هم د تجارت په ذریعه یو قوم خپل ټول فالتو پیداوار سره بدلولې شي. دولت جمع کولے شي او د مهذب ژوندون د ارام او د نعمتونو نه فائده وچتولې شي. په ګاونډي قومونو کښې د دې نعمتونو او د ارامونو خوروِل د حکومت برطانیه عامه مدعا ده. د هغوي دا هرګز کوشش نۀ دے چې تش هغوي دې د دې نه مستفید شي. بلکې د هغوي دلي خواهش دا دے چې د ایشیا په ټولو ملکونو کښې دې امن او دولت قائم شي.

هم په دې غرض حکومت برطانیه هغه ټول حکومتونه چې د دریاب په دواړو غاړو پراتۀ دي په دې خبره آماده کوي چې دریائے سنده دې د جهاز رانۍ دپاره ازاد شي. او د دې حکومت ټول کوششونه دې همیش د دې غرض د حاصلولو دپاري وي.

زۀ اوس سر الیګزنډر برنس د دې غرض دپاره درلیږم چې دا چیټۍ درله درکړي. او تا سره د هندوستان او افغانستان په منځکښې د تجارتي آمدورفت دپاره د سهولتونو پیدا کولو بهترین تجویزونو باندې خبرې اترې وکړي. زما قوي امید دے چې تۀ به هغۀ ته پخپل دربار کښې په دوستانه طریقه خوش آمدید ووائې او تاسره به د هغۀ ګفت و شنید هغه ټولې فائدې چې کومې زما په خیال کښې دي حاصلې کړي.

په اخر کښې وغیره وغیره

دستخط آکلینډ

د دې مشن د رارسیدو نه یو شو ورځې پس د دوست محمد خان او د سر الیګزنډر برنس په سیاسي معاملاتو باندې خبرې اترې وشوې. او دوست محمد خان برنس ته د

سکهانو نه د پېښور د علاقې د واپس اخستلو مطالبه پیش کړه. موهن لعل د برنس میرمنشي پخپل کتاب کښې وائي چې برنس ورته په جواب کښې ووئیل چې په پېښور باندې ستا هیچرې قبضه نۀ وه بلکې د دې حکومت خو سلطان محمد او پیر محمد خان سره وۀ او اوس هم رنجیت سنګهـ هغوي له په دې علاقه کښې جاګیرونه ورکړي دي. بیا ئې ورته ووئیل چې مهاراجه رنجیت سنګهـ زمونږ وفادار اتحادي دے او طاقت او مال هم ډېر زیات لري. نو چونکې د جمرود په حمله کښې د هغۀ سپه سالار هري سنګهـ قتل شوے دے مونږ به هغه ستا په خلاف د مزید جارحانه کارروایو نه منع کړو. مونږ به مهاراجه ته دوستانه رائې ورکړو چې تۀ پېښور سلطان محمد خان ته پرېږده. دوست محمد خان ورته په جواب کښې ووئیل چې زما خو دا خیال وۀ چې کۀ چرې زما په سر اوس د ململ پګړې ده نو د انګریزانو د دوستۍ په وجه به هغه په شال بدله شي مګر دا شان معلومېږي چې انګریزان زما په سر باندې هم هغه د ململ زړه پګړې ساتل غواړي او تش دومره اقرار راسره کول غواړي چې تا نه به دا د ململ پګړې څوک نۀ کوزوي. زما په نزد دا قسم اقرار هیڅ قدر نۀ لري. ځکه چې زما دا یقین دے چې د ململ دا پګړې زما نه هیڅوک هم نشي اخستے. بیا ئې ورته ووئیل چې کۀ چرې پېښور سلطان محمد خان ته ورکړې شو نو دا د انګریزانو ما سره هیڅ ښېګړه نۀ ده. بلکې زما د کابل حکومت ته به په دې ډېر نقصان ورسي او اګر چې سلطان محمد خان زما ورور دے مګر د هغۀ لږ او وړوکے لښکر زما دپاره د سکهانو د یو لوے لښکر نه زیات خطرناک دے. سکهان به زما ورور له روپۍ ورکړي او د مسلمانانې په جامه کښې به د سکهانو اثر او حکومت عین زما تر صدر مقام پورې راولي. هغۀ دا هم ووئیل چې سکهانو په پېښور په داسې وخت کښې قبضه وکړه چې زۀ شاه شجاع سره په قندهار کښې په جنګ نښتے وم حالانکې د سکهانو په پېښور کښې نۀ چرې د څۀ قسم حقوق وو او نۀ اوس شته. اخر د ډېر بحث مباحثې نه پس برنس د دوست محمد خان د دعوې په صداقت باندې قائله شو او هغۀ د دې متعلق ګورنر جنرل ته خطونه ولیکل.

په دې اثنا کښې د کندل خان والئ قندهار په زړۀ کښې شک پیدا شو چې امیر دوست محمد خان چې انګریزانو سره د دوستۍ د پیدا کولو کوشش کوي دا ګني ذ دې دپاره کوي چې هغه په قندهار باندې پیشقدمي وکړي. پس هغۀ د دې خلاف ایران او روس د پرې او ډلې جوړولو دپاره خپل یو سفیر ایران ته، او په تهران کښې د روسي سفارت خانې په ذریعه یو خط زار روس ته د دې دواړو حکومتونو سره د اتحاد قائمولو دپاره ولیږل. دواړو حکومتونو د کندل خان د دې خواهش نه فائده واخسته چنانچه د ایران او د کندل خان په منځکښې سمدستي د باهمي امداد وعده وشوه او روس خپل یو افسر کپتان ویکویچ قندهار ته راولیږلو. هر کله چې هغه قندهار ته راورسیدو نو هغۀ ته دا معلومه شوه چې د افغانستان

ټول سیاسي اهمیت په کابل کښې دے. او قندهار یوه معمولي صوبه ده. له دې کبله هغهٔ خان سره د زار نه یوه چیټهی د دوست محمد خان په نوم راواخسته. او په طرف د کابل رااروان شو. اګر کهٔ په هغه چیټهی کښې زار دا لیکلي وو چې کپتان ویکویچ به امیر صاحب سره په تجارتي معاملاتو باندې خبرې اترې کوي مګر اصلي مدعا لکه چې څهٔ رنګ د برنس سیاسي وه هم دغه شان د ویکویچ هم سیاسي وه. د دې دواړو افسرانو کابل ته د راتلو اصلي غرض د خپلو خپلو حکومتونو د سیاسي اثر او رسوخ او اقتدار زیاتول وو او د تجارت ترقي هسې یوه بهانه وه. کپتان ویکویچ کابل ته راورسیدو او برنس د دې ټولې معاملې اطلاع خپل حکومت ته په خپله یوه مراسله کښې په دې الفاظو کښې ورکړه:

" January, 15, 1838. Since I have been here, I have learnt that a Persian Agent bearing presents for Dost Muhammad Klan has penetrated the country as far as Qandahar and he has announced himslef as the bearer of the most seductive promises; but he was nevertheless obliged to leave Afghanistan almost immediately because no one invited him to come to Kabul. After him a Russian Agent came, by name Vikovitch; he brought flattering compliments and offer of lasting engagements but he was received with only the respect due to any stranger and the regular forms of hospitality. The Amir has said that his interest was in English alliance, and that he would not abandon that while he had a hope of obtaining it."

ترجمه: پنځلسم مئ 1838ء د کوم وخت نه چې زهٔ دلته رارسیدلے یم نو ماته معلومه شوې ده چې یو ایرانے ایجنټ دې ملک ته عین تر قندهار پورې رانوتے دے او د دوست محمد خان دپاره ئې تحفې خان سره راوړې دي. هغه خلقو ته وائي چې ماته د لمداد ورکولو دپاره د هر قسم عهدنامې اختیار شته دے ولې سره د دې هغه د افغانستان نه په واپس تلو باندې سمدستي مجبور شو ځکه چې هغهٔ له کابل ته د راتلو دعوت هیچا ور نهٔ کړو. د هغهٔ نه پس بیا یو روسي ایجنټ راغلو چې د هغهٔ نوم ویکویچ دے هغهٔ خان سره د خوشامندو نه ډک سلامونه راوړي دي او د دائمي اتحاد کولو دپاره تیاري ظاهروي. مګر د هغهٔ صرف دومره قدر شوے دے او دغه هومره ظاهري میلمستیا ئې شوې ده څومره چې د بل وطن یو سړي سره عام کیږي. امیر دا وائي چې زما فائده انګریزانو سره په اتحاد کولو کښې ده او تر کومه پورې چې زما د دې اتحاد د حاصلولو امید شته دے تر هغې به ئې زهٔ نهٔ پریږدم.

د برنس د دې خط نه صفا معلومیږي چې امیر دوست محمد خان روسیانو سره د هیڅ قسم سیاسي تعلقات جوړول نهٔ غوښتل. او د برنس خپله منشا هم دا وه چې د هندوستان انګریزي حکومت دې امیر صاحب سره د دوستۍ عهدوپیمان وکړي. امیر صاحب د یو بل ملاقات په دوران کښې برنس ته د خپل زړهٔ حال دا شان بیان کړو.

" زهٔ تاسو نه د دوستۍ په بدل کښې ډیر لږ څهٔ غواړم او هغه لږ څهٔ مطالبات هم ډیر

جائز او منصفانه دي. زهٔ د انګريزانو نه صرف دا مطالبه کوم چې ما دې هغوي د سکهانو د پيشقدمۍ نه او د ايرانيانو د غصې نه خلاص کړي. ايرانيان ما هيڅرې هم ستاسو د دوستانه تعلقاتو په وجه هسې بې نقصانه نهٔ پريږدي. زما دويم سوال دا دے چې انګريزان دې سکهان مجبور کړي چې هغوي پيښور ماته واپس کړي. ځکه چې د دريائے سندهـ نه دې غاړه زما د علاقې سرحد صرف د پيښور په قبضه باندې محفوظ کيږي. د ايران په باره کښې دا وايم چې انګريزان دې هغه د قندهار يا د هرات اخستو ته او يا د هغوي باجګزار کولو ته نهٔ پريږدي. کهٔ چرې تاسو زما دا مطالبات منظور کړئ نو زهٔ ټول ټال ستاسو يم. زهٔ به هيڅرې بل چا سره ګفت و شنيد ونهٔ کړم. تر څو پورې چې زما طمع تاسو نه بالکل قطع شوې نهٔ ده او بيا هم کهٔ چرې زهٔ بل چا سره دوستي جوړوم نو هغه به زهٔ انګريزانو سره د ورانولو په خاطر نهٔ جوړوم. بلکې با صد دل ناخواسته به هغه زهٔ د افغانستان د حفاظت او د خپل آبرو او د عزت ساتلو دپاره جوړوم. د دې په مقابله کښې کهٔ چرې انګريزان په ما لاس کيږدي او ماته ښه صلاح مشوره راکوي نو زهٔ به ډير خوشحاله يم. او د هغې په بدل کښې به زهٔ د هغوي د هر سياسي او تجارتي کارروايي تائيد کوم."

برنس د دوست محمد خان د دې دلائلو او د هغهٔ د صداقت ترديد په هيڅ شان نشو کولے او پرله پسې ئې لارډ آکلينډ ته دوست محمد خان سره د دوستۍ عهدوپيمان کولو سفارش وکړو مګر اخر کار د لارډ آکلينډ جواب راغلو چې د دوست محمد خان دپاره حد درجه مايوس کن وهٔ. په دې جواب کښې هم هغه زړې خبرې وے چې کوم برنس وړومبے وړومبے امير صاحب ته کړې وے. لارډ آکلينډ ليکلي وو : " امير صاحب دې د رنجيت سنګهـ په دې فيصله باندې چې پيښور دې سلطان محمد خان ته حواله شي رضامندي ظاهره کړي." مګر امير صاحب ته دا هرګز منظوره نهٔ وه چې د سکهانو يو نوکر او دست نګر سړے دې زما د علاقې په خوا کښې پريښودې شي.

هر څو مره چې برنس کوشش وکړو چې لارډ آکلينډ دې پخپله فيصله باندې نظر ثاني وکړي مګر د هغهٔ يوه خبره هم ونهٔ چليده. تر شپږ ويشتمه جنورى 1838ء او د هغې نه پس قريباً يوه مياشت پورې د امير صاحب دا يقين وهٔ چې د برنس په رپورټونو به ګورنر جنرل ضرور ماته څهٔ د تسلي جواب راکړي. له دې کبله هغهٔ د روس ايجنټ سره هيڅ قسم د راز باز خبرې ونهٔ کړې. ډير په شاذ و نادرو موقعو باندې به هغه ويکويچ سره ليدل کتل. او هغه هم په ډيره سردمهرى باندې. مګر په يويشتمه فرورى باندې د لارډ آکلينډ د طرف نه قطعي او اخري جواب راغے چې حکومت انګريزي د دوست محمد خان د مطالباتو منلو ته بالکل تيار نهٔ دے. سره د دې دوست محمد خان دا هرګز نهٔ غوښتل چې زما تعلقات دې انګريزانو سره خراب شي. ولې دا ئې هم نشوه منلې چې د پښتنو خپل ملک دې د يو داسې

سړي د لاندې پاتې شي چې څۀ لږه موده وړومبے د پښتنو يو نوکر وۀ. رنجيت سنګهـ د شاه زمان دلاسه د فوځي خدماتو په عوض کښې د لاهور ګورنر مقرر شوے وۀ. او پلار په نيکۀ د پښتنو جاګيردار او انعام خور پاتې شوے وۀ. دا ټولې خبرې هغۀ يو کرت بيا د وائسرائے غوږونو ته د برنس په ذريعه ورسولې ولې ګورنر جنرل پخپله فيصله کښې هيڅ ترميم ونۀ کړو.

اخر برنس په شپږويشتم اپريل 1838ء د کابل نه ناکام واپس شو. او دوست محمد خان هغۀ له يوه بله دستي چيټۍ د وائسرائے په نوم په ډيرو مؤثرو الفاظو کښې ليکلې ورکړه. مګر د دې هم هيڅ نتيجه را ونۀ وتله. انګريزانو د دوست محمد خان په ځائے سکهانو سره د دوستۍ عهدوپيمان وکړو او د پښتنو د ملک په يوه لويه حصه باندې د هغوي تسلط او حکومت ئې تسليم کړو. بلکې وقتاً فوقتاً به ئې د هغوي په نورو مقبوضاتو باندې هم سکهانو له د ګوابښيدو زړورتيا ورکوله. د انګريزانو د سياسي پاليسۍ مطلب دا وۀ چې کۀ چرې افغانستان خپل ځان روس او ايران سره وګنډلو نو موږ به سکهان د پښتنو په خلاف ودروؤ.

هر کله چې دوست محمد خان انګريزانو سره د دوستۍ او اتحاد کولو نه طمع بالکل قطع کړه نو هغۀ خپله رويه روسي سفير سره بدله کړه. او هغۀ سره ګفت و شنيد ئې شروع کړل. دې سفير امير دوست محمد خان ته د هر قسم مالي او فوځي امداد ورکولو اقرار وکړو او دا طمع ئې هم ورکړه چې روس به د رنجيت سنګهـ سره ستا دپاره د پيښور د علاقې د واپسۍ خبرې اترې وکړي. د دې خبرو نه پس ويکويچ واپس قندهار او ايران ته لاړو. د دوست محمد خان او د هغۀ د وروڼو په منځکښې ئې د دوستۍ تعلقات قائم کړل. او ايران سره ئې هم د هغۀ معاهده وکړه. ايران د دې عهدنامې مطابق امير صاحب ته د ضرورت مطابق د فوځي امداد ورکولو لوظ وکړو.

د عهد نامو او د خبرو اترو دې سلسلې د هندوستان او د انګلستان په انګريزي حکومت کښې يو لوے هلچل پيدا کړو او د انګلستان وزارت خارجه هم اوس د خوبه راويښ شو لارډ کليزيکارډ د انګريزي حکومت د طرف نه يوه زورداره چيټۍ د روس وزير خارجه ته په دې مضمون وليکله چې:

"د ګورنمنټ برطانيه په قبضه کښې د هغه عهدنامې نقل موجود دے چې کومه د ايران او د قندهار د حکومت ترمنځ شوے ده او کاونټ سائمونچ چې د روس سفير مقيم طهران وۀ په هغې کښې ضامن دے. د دې عهدنامې په رو سره د روس حکومت ايران مجبورولے شي چې هغه په هرات باندې قبضه وکړي او هرات هغه د قندهار حکومت ته حواله کړي. بيا هرات او قندهار دواړه د ايران باجګزار شي. د دې نه علاوه د روس د طرف نه د قندهار حکومت سره دا اقرار شوے دے چې کۀ چرې چا بيروني طاقت په قندهار يا د هغې په

مقبوضاتو حمله وکړه نو ایران به د قندهار امداد کوي. حکومت برطانیه ته مزید دا اطلاع هم موصول شوې ده چې ویکویچ نومې یو روسي د شهنشاه روس د طرف نه څۀ خط د والئ کابل په نوم باندې هم راوړې دې. د دې خط نقل هم زمونږ په قبضه کښې دې. حکومت برطانیه ته دا هم معلومه شوې ده چې کاؤنټ سائمونچ شاه ایران ته دا وئیلي وو چې کپتان ویکویچ به والئ کابل ته دا وینا کوي چې حکومت ایران به والئ کابل ته د رنجیت سنګهه په خلاف امداد ورکوي. د دې ټولو خبرو نه دا معلومیږي چې دا روسي سفیر د قندهار او د کابل بادشاهانو ته دا ترغیب ورکوي چې تاسو ټول تعلقات انګریزانو سره پریکړئ.

په اخر کښې لارډ کلیزیکارډ په دې چیټۍ کښې حکومت روس ته لیکلي وو چې " روس ته دا مکمل اختیار دې چې هغه د دې معاملو پحقله څۀ رنګ چې د هغوي خوښه وي د خپلې پالیسۍ فیصله وکړې مګر حکومت برطانیه ته د روس نه د دې دریافت کولو حق حاصل دې چې آیا مونږ د روس د پالیسۍ متعلق چې کومه هغه ایران او برطانیه سره چلول غواړي د کاؤنټ نیسلروډ او د مسټر روډ فینکن په بیانونو اعتبار وکړو او کۀ د کاؤنټ سائمونچ او ویکویچ په رویه باندې؟

د دې په جواب کښې کاؤنټ نیسلروډ په شلم اکتوبر 1838ء یو لوې تحریر خپل سفیر مقیم لندن ته په دې غرض واستولو چې هغه ئ د حکومت برطانیه وزارت خارجه ته ورکړي. په دې تحریر کښې هغۀ د حکومت برطانیه د برنو ټولو واقعاتو د صحت نه انکار کړې وۀ او ورته ئ صاف لیکلي وو چې د هندوستان د اخستلو یا په هغې باندې د حملې کولو اراده نۀ چرې د روس په دماغ کښې راغلې ده او نۀ به چرې راشي. په دې تحریر کښې هغۀ د روس حکومت ایران ته په هرات باندې د حملې کولو د ترغیب نه هم انکار کړې وۀ او د ویکویچ د سفارت پحقله ئ لیکلي وو چې هغه خو کابل ته صرف د تجارتي تعلقاتو د قائمولو دپاره تلې وۀ او سیاسیاتو سره د هغۀ هیڅ سروکار نۀ وۀ. دا خو ټول کاغذي دروغ وو چې د یورپ دوؤ مهذبو او لویو حکومتونو په یو بل باندې تپل. مګر دا حقیقت وۀ چې د هرات په علاقه باندې د ایرانیانو پیشقدمۍ د یورپ په ممالکو کښې بالعموم او په انګلستان کښې بالخصوص یو هیجان پیدا کړې وۀ. او د انګریزانو په دماغ کښې دا خبره د یقین تر درجې رسیدلې وه چې د هندوستان سلطنت د روس د لاسه په خطره کښې دې او د هرات تسخیر په هندوستان باندې د پیشقدمۍ پیش خیمه ده. هغوي په هرات باندې د ایران فوځ کشي د روسیانو د لمسې نتیجه ګڼله او چونکې د ایران او د دوست محمد خان په منځکښې هم د دوستۍ عهدوپیمان وشو نو انګریزانو دا خیال وکړو چې کۀ هرات د ایران لاس ته راغلو نو د روس فوځونه به بې تکلیفه په ټول افغانستان کښې راخوارۀ شي او بیا به هغوي د هندوستان په ملک باندې څۀ موده پس حمله آور شي.

# د حکومت ایران په هرات باندې حمله

مونږ په یو تیر شوي باب کښې د هرات د علاقې تاریخ قریباً تر 1832ء پورې په تفصیل سره لیکلے دے د دې کال نه تر 1837ء پورې هیڅ څهٔ داسې مشهوره واقعه چې په تاریخ کښې د لیکلو قابل وي په هرات کښې پیښه شوې نهٔ ده. ولې کومه حمله چې ایران په 1837ء کښې په دې علاقه باندې شروع کړه هغې د روس او د انګریزانو په منځکښې سخته کشیدګي اوسیاسي رقابت پیدا کړو. مونږ څو څو ځله دا لیکلي دي چې د ایران دا حمله انګریزانو د روس د لمسې نتیجه ګڼله مګر په کومه طریقه چې د روس اقتدار په ایران کښې ورو ورو زیاتیدلو چونکې هغه هم د تاریخې دلچسپۍ نه خالي نهٔ وهٔ . مونږ لږ په تفصیل سره په هغې باندې بحث کول مناسب ګڼو.

د ایران او د روس په منځکښې د کال 1799ء نه تر کال 1813ء مسلسله ناچاقي او دشمني راتله او کم و بیش په دې ټوله موده کښې د هغوي فوځونه باهمي جنګ و جدل کښې نښتي وو. اګر کهٔ د نپولین بوناپارټ د حملو په وجه روس یو څو کاله ایران طرف ته پوره توجه نهٔ وه کړې ولې د ایران په خلاف د هغهٔ په جارحانه پالیسۍ کښې څهٔ فرق نهٔ وهٔ راغلے. لکه څهٔ رنګه چې مونږ ډیر ځله وړومبے لیکلي دي انګریزانو سره هم په ایران کښې د روس د پیشقدمۍ فکر وهٔ. نو هغوي غوښتل چې په کومو بهانو چې روس د ایران صوبې پسې صوبه لاندې کوي هغه بهانې مونږ د دواړو حکومتونو په منځکښې د خبرو اترو په ذریعه رفع دفع کړو. بالاخر د انګریزانو هم د دې کوشش نتیجه وه چې د ایران او د روس په منځکښې د انګلستان عهدنامه وشوه. د دې عهدنامې په ذریعه ایران د بحیرهٔ خضر نه سهیل ته خپلې هغه ټولې صوبې چې کومې روس د هغوي نه فتح کړې وے روس ته پریښودې او دا اقرار ئې وکړو چې ایران به په بُحَیرهٔ خضر کښې د هیڅ قسم بحري بیړه نهٔ ساتي. وړومبے ذکر شوے دے چې په کال 1808ء کښې حکومت برطانیه سرهارفورډ جونز په طور د سفیر تهران ته لیږلے وهٔ ځکه چې هغوي سره دا ویره پیدا شوې وه چې ایران او فرانس په هندوستان باندې د حملې کولو دپاره عهدوپیمان کړے دے. دا هم ذکر شوي دي چې په دولسم مارچ 1809ء سرهارفورډ جونز ایران سره په یوه اِبتدائي عهدنامه کولو کښې کامیاب شوے وهٔ. په کال 1811ء کښې د سرهارفورډ جونز په ځاے سر ګور اوزلے مقرر شو او کومه ابتدائي عهدنامه چې په دولسم مارچ 1809ء کښې شوي وه هغه د حکومت ایران سره د معمولي ترمیم و تنسیخ نه پس مستقل طور فیصله کړه. د دې عهدنامې مطابق حکومت برطانیه علاوه د هغې نورو شرطونو نه چې کوم وړومبي بیان شوي دي دا اقرار وکړو چې انګریزان به دوه لکه

تومان سالانه مالي امداد چې قريباً يو نيم لکه پونډه کيږي ايران ته ادا کوي. دا عهدنامه په څوارلسم مارچ 1812ء د انګريزانو او د ايران په منځکښې دستخط شوه. په کال 1814ء کښې د سر ګوراوزلے په ځاے د دې غرض دپاره تهران ته واستولے شو چې هغه څۀ نور ترميم و تنسيخ هم په دې عهدنامه کښې وکړي.

اخر کار په پنځويشتم نومبر 1814ء د تهران په مقام يو اخري او مستقل عهدنامه په دې دواړو حکومتونو کښې وشوه. د دې عهدنامې په رُو سره حکومت ايران دا اقرار وکړو چې هغوي به هيڅ يورپين فوځ د ايران په حد کښې تيريدو ته نۀ پريږدي او نۀ به هغوي هندوستان طرف ته او لا د هغې بندرګاهونو طرف ته څوک پريږدي. او کومو کومو يورپين طاقتونو چې انګريزانو سره دشمني ده هغوي به هيڅرې هم شاه ايران د ايران په سرزمين کښې په هندوستان باندې د حملې کولو تيارى ته نۀ پريږدي. بل شرط ايران دا منلے وۀ چې کۀ چرې يو يورپين طاقت په هندوستان د خراسان، تاتارستان، بخارا، سمرقند يا په نورو لارو باندې د حملې کولو کوشش کوي نو شاه ايران به خپل پوره وس د دې خبرې کوي چې د دې ملکونو بادشاهان او واليان هغه لا خو په فوځي زور او لا په رضا صلاح مجبور کړي چې هغوي د دې قسم حملې مقابله وکړي. د دې عهد نامې اتم او نهم شرطونه دا وو :

(8) Should the Afghans be at war with the British Nation, His Persian Majesty engages to send an army against them, in such manner, and of such force, as may be concerted with the English Govt;. The expenses of such an army shall be defrayed by the British Govt; in such manner as may be agreed upon at the period of its being required.

(9) If war should be declared between the Afghan and Persians, the English Govt; shall not interfere with either party, unless their mediation to effect a peace shall be solicited by both parties.

ترجمه : (۸) کۀ چرې د پښتنو او د فيرنګيانو په منځکښې جنګ ونښتو نو شاه ايران اقرار کوي چې زۀ به د هغوي (يعني د پښتنو خلاف) دغه هومره فوځ په داسې طريقه استوم چې څۀ رنګ فيرنګيان غواړي. د دې فوځ خرڅ به حکومت برطانيه ادا کوي. په داسې طريقه چې په هغه وخت کښې فيصله شي.

(۹) کۀ چرې د پښتنو او ايرانيانو په منځکښې جنګ ونښتو نو حکومت انګريزي به يو سره هم غرض نۀ لري. تر څو پورې چې دواړه فريقه هغوي ته د صلح کولو دپاره درخواست ونۀ کړي.

هم د دې عهدنامې په شرط نمبر شپږم کښې انګريزانو دا اقرار کړے وۀ چې " کۀ چرې د يو داسې يورپين طاقت چې هغۀ سره د انګلستان صلح وي ايران سره جنګ پيښ شۀ نو حکومت برطانيه دا اقرار کوي چې مونږ به د ايران او د هغې يورپي طاقت په منځکښې د

صلح او راضي نامې کولو انتهائي کوشش کوؤ. مګر کۀ چرې حکومت برطانيه په دې کوشش کښې کامياب نۀ شو نو برطانيه به بدستور د وړومبنو شرطونو مطابق د ايران حسب خواهش د هندوستان نه ايران ته امدادي فوځ ورليږي. او کۀ نۀ وي نو د هغې په ځاے به د ايراني فوځ د اخراجاتو دپاره دوه لکه تومانه سالانه تر هغې پورې ادا کوي تر کومه چې د ايران او د هغې يورپي طاقت په منځکښې جنګ جاري وي او لا تر هغې چې تر کومه د هغوي په منځکښې صلح نۀ وي شوې.

د دې عهدنامې مطابق انګريزانو ايران سره د دې خبرې په صاف او غير مشکوک الفاظو کښې اقرار وکړو چې کۀ چرې د روس او د ايران په منځکښې جنګ ونښتو نو برطانيه به ايران له لا خو فوځي او لا د هغې په ځاے مالي امداد ورکوي اګر کۀ د انګريزانو او د روس باهمي صلح هم وي.

د انګلستان د عهد نامې نه پس د څۀ مودې دپاره د روس او د ايران باهمي تعلقات ښۀ پاتې شول او په دې عرصه کښې حکومت برطانيه هم دا رويه اختيار کړه چې د ايران فوځي طاقت دې دومره زيات شي چې هغه په کاميابۍ سره د روس د هندوستان په طرف د پيشقدمۍ مقابله وکړي. چنانچه انګريزانو د دې غرض دپاره په ايران باندې خپله د نوې قسم ډيره اسلحه خرڅه کړه ډيرې توپې ئ هغوي له ورکړې او د خپل فوځ ښۀ ښۀ ماهرين ئ د هغوي د فوځ د تنظيم او تربيت دپاره راوليږل.

شهزاده عباس وليعهد سلطنت هم په ډيرې تندهۍ سره د ايران فوځي طاقت مستحکم کولو کښې مصروف شو. هم په دې شان د ايران او د روس تعلقات تر 1826ء پورې په ظاهره خو خوشګوار پاتې شول ولې چونکې د ايران نه ډيره لويه علاقه د انګلستان د عهدنامې په وخت روس شوکولې وه. له دې کبله د شاه ايران د زړۀ نه د روس عداوت وتل ناممکن وو. دې خوا چونکې روس ته د خپل عظيم الشان فوځي طاقت او د ايران د کمزورۍ احساس وۀ او د روس او د ايران تر منځه مستقل حد بندي هم نۀ وه شوې په دې سبب به د دې دواړو حکومتونو په مابين کښې هر کال څۀ نه څۀ کشمکش ضرور وه. روس به هميشه د داسې موقع په تلاش کښې وۀ چې ايران بيا روس سره جنګ ونښلوي او د دې غرض دپاره به روسي افسرانو هميشه دا شان کارونه کول چې ايرانيان په هغې مشتعل شي او د ايران د طرف نه تيرۀ ماته شي. د جارجيا په صوبه کښې روس د هغې علاقې په مسلمانانو باندې خپل ملک د ظلم او د زياتي نه يو سور تنور کړو او داسې مذهبي تعصب ئ ورسره راواخستو چې د هغوي جماعتونه او د عبادت ځايونه ئ بې درکې ورانول شروع کړل. په ظاهره باهره به هغوي د اسلام توهين کولو او په څۀ نه څۀ بهانو به ئ د هغوي جائدادونه ضبطول. چونکې دا علاقه وړومبۍ د ايران نورې علاقې سره بالکل په ګاونډ کښې پرته وه. دا قدرتي خبره وه چې

د ایران مسلمانان دې هغوي سره همدردي وکړي. لهٔ دې کبله د ایران په ټول سرزمین کښې د روس په خلاف یو عظیم الشان شورش پیدا شو. لړه موده وړومبے جارجیا ته د ایران د لاندې مکمله مذهبي ازادي حاصله وه او هر مسلمان او عیسائي به د خپل خپل مذهب د اصولو مطابق د عبادت فرائض ادا کول. مګر د انګلستان عهدنامې دا صوبه د ایران نه وشوکوله او روس ته ئې حواله کړه. پس دا لازمي وه چې د خپل مصیبت او تکلیف په وخت کښې دې د جارجیا مسلمانان د خپل قوم خالقو ته د امداد اپیل وکړي. نتیجه دا شوه چې د ایران ټول خلق کهٔ ملیان وو او کهٔ رئیسان، سوداګر وو کهٔ زمیندار بالاتفاق راوچت شول او شاه ایران ته ئې د جارجیا د مظلومو مسلمانانو په مرسته د ودریدلو درخواست وکړو. ځاے په ځاے د ملیانو خطبو او د مشرانو تقریرونو په قوم کښې یو داسې جوش پیدا کړو چې د روس او ایران تعلقات پریکیدو ته نزدې شول. شاه ایران ته خپله کمزوري معلومه وه او هغه پخپله روس سره د جنګ نه بالکل خلاف وهٔ ځو ځو ځله د هغهٔ ښو ښو فوځونو د روس د لاسه شکستونه خوړلي وو او دغه شان لړې لویې علاقې ئې د لاسه وتلې وے مګر د ملیانو او د قومي مشرانو جوش او جذبه دومره زیاته شوه چې بادشاه اخر په دې مجبور شو چې خپل رعایا سره دا لوظ وکړي چې کهٔ چرې روس د ګوګ چاه علاقه چې روس په هغې د څهٔ لړې مودې نه ناجائزه قبضه کړې وه فوراً ایران ته واپس نهٔ کړه نو ایران به روس باندې د جنګ اعلان وکړي.

حقیقت دا وهٔ چې د ایران دا کلکه طمع وه چې روس به ضرور دا علاقه ایران ته واپس کړي ځکه چې روس په هغې باندې د انصاف او د اقرار نه بالکل خلاف قبضه کړې وه. او په دې طریقه به زهٔ د جنګ نه ځان وساتم. مګر څهٔ وخت چې په دې معامله د دواړو حکومتونو خط و کتابت وشو نو روس د دې ځاے د پریښودو نه صفا انکار وکړو. پس اوس خو د اولس خلقو ملیانو او مشرانو بیا شور جوړ کړو او اخر الامر شاه ایران په روس باندې د اعلان جنګ په کولو مجبور شو. د علماؤ په تقریرونو او د قوم د سردارانو، رئیسانو او مشرانو په فصاحت او بلاغت د ایران په ټول ملک کښې د قومیت او د حب الوطني یوه داسې جذبه مشتعله شوه چې زرګونه او لکونه خلق د شاهي جنډې لاندې راجمع شول او د روس په هغې ټولو ځوکو باندې ئې حملې وکړې چې کومې د هغوي په خوا کښې پرتې وے. مګر جنګونه د اولس د خلقو په غیر منظم لښکرونو نشي ګټلے. تر څو چې هغه او د هغې افسران د جنګ د فنونو نه ښهٔ واقف نهٔ وي. او فوځ سره د نوي نوي قسم اسلحه او سامان جنګ نهٔ وي. د ایران ټول ملک د پښتنو په شان د ډیرې مودې نه مخ په ښکته روان وهٔ نهٔ خو د هغوي انتظامي کار سم وهٔ او نهٔ فوځي. هم ئې د اولس خلق نالائق او بیکاره وو او هم ئې د حکومت مشران. په خلقو کښې د جهالت د بې علمۍ بې اتفاقۍ او پرو جنبو چړچه وه. او

د حکومت په افسرانو کښې د بدعملي، بدچلني او رشوت ستانۍ دوردوره وه. لارې غیر محفوظې وې او په ملک کښې د ډاکوانو او د غلو او شوکمارو دلاسه چارچاپیره بدامني وه. د افسرانو د بداعمالۍ او رشوت ستانۍ په وجه هیچا سره هم انصاف نهٔ کیدلو. او هر چا سره چې به روپۍ ډیرې وې نو اکثر به فیصلې د هغهٔ په حق کښې کیدے.

هر کله چې د یو قوم اندروني حالت دا شان وي نو نهٔ خو د هغوي تجارت پاتې شي او نهٔ د آمدنۍ څهٔ بله ذریعه. د دولت گټلو او قومي ثروت د زیاتیدلو ټولې لارې بندې شي او د حکومت خزانه ورور ورو خالي شي. هر کله چې یو حکومت سره دولت او مال نهٔ وي نو هغه یو ښهٔ فوځ څهٔ رنګ وډرولے شي او په ملک کښې انتظام چرته قائمولے شي. دغه شان د ایران حالت وهٔ چې د روس دِ ایران په منځکښې دوباره جنګ ونښتو په خلقو کښې جوش او جذبه خو ډیره وه د مرګ نه هم ویریدل نه ولې د نن زمانې جنګونه تش په جوش او جذبه نشي گټلے.

شهزاده عباس د دې قسم څلویښت زره فوځ سره د گوګ چاه د بالیکلو او څهٔ نورو علاقو باندې پیشقدمي وکړه. او لاندې ئ کړل مګر دا فتوحات ډیره موده پاتې نشول. په لږه موده کښې د محمد مرزا چې د عباس زوے وهٔ د ناتجربه کارۍ په وجه د ایران یو مکمل ډویژن د روسیانو د لاسه تباه شو او عباس شهزاده پخپله هم د کال 1826ء په ستمبر کښې د روس جرنیل پاس کیوچ د لاسه په میدان جنګ کښې سخت شکست وخوړو. جنګ د 1827ء د سپرلي پورې جاري وهٔ مګر په هر ځاے کښې د روس منظم فوځونو د ایران فوځونو له شکستونه ورکړل. او د ایران نه ئ نورې دوه علاقې د تبریز او د اریوان لاندې کړې. ایران د پرله پسې شکستونو په سبب کمزورے شو او اخر ئ روس سره د صلح تجویز وکړو. د وړدو خبرو اترو نه پس اخر کار په فروري 1828ء کښې د جنرل پاس کیوچ او د عباس شهزاده په منځکښې د ترکمانچي عهدنامه وشوه او د انګلستان عهدنامه منسوخ شوه.

دا عهدنامه د ایران دپاره د انګلستان د عهدنامې نه هم زیاتي ذلیله او سپکه وه. په دې عهدنامه کښې روس د ایران نه د اریوان او د نقش ایوان علاقې هم واخستې او کومه حد بندي چې د روسیانو خوښه وه هغه قائمه شوه. د دې نه علاوه اتهٔ کروړه روبل تاوان جنګ هم روس په ایران کښېښودو. دا عهدنامه د روس او د ایران په منځکښې د انګریزانو په وساطت وشوه او باوجود د دې نه چې د وړومبنو عهدنامو د شرطونو مطابق انګریزانو له اخلاقاً دا لازمه وه چې د ایران په مرسته ولاړ وے ولې هغوي نهٔ خو ایران له څهٔ امداد ورکړو بلکې د سرهارفورډ جونز په الفاظو کښې انګریزانو ایران "لاس تړلے او پښې تړلے د سینټ پیټرز برګ دربار ته حواله کړو."

دې کښې شک نشته چې د تهران په عهدنامه کښې دا هم لیکلي وو چې کهٔ چرې د

جنګ اقدام یا اشتعال د ایران د طرف نه وۀ نو بیا به انګریزان ایران له امداد نۀ ورکوي. ولې انګریزانو باوجود د صریح او صفا واقعاتو نه د دې شرط د الفاظو نه ناجائزه فائده وچته کړه او ایران له ئې د امداد ورکولو نه انکار وکړو. دا ښکاره خبره وه چې د ګوګ چاه علاقه د ایران وه او روسیانو په هغې ناجائزه قبضه کړې وه. د روس د دې علاقې قبضه نۀ پرېښودل د ایران په ملک باندې بلا وجه ګواښېدل وو. او په دې وجه ایران پخپل اعلان جنګ کښې بالکل حق په جانب وۀ.

سر جان کے په خپل تاریخ " جنګ افغانستان" جلد ۱ صفحه ۱۵۲ باندې د دې صلح پحقله خپله رائې دا شان لیکي :

"Whatever overtacts may have been committed, it is certain that the real provocation not from the Mohammadan but from the Christian State. The backwardness of England at such a time was of dubious honesty, as it doubtless was of dubious expediency."

ترجمه : ښکاره کار هر څۀ چې شوے وي خو دا یقیني خبره ده چې اصلي اشتعال د مسلمان حکومت د طرف نه نۀ وۀ بلکې د عیسائي حکومت د طرفه وۀ. په داسې وخت کښې د انګلستان شا ته پاتې کیدل د مشتبه دیانتدارئ کار وۀ او د مشکوک موزونیت خو ضرور وۀ. یعنې په داسې موقع د انګلستان ایران سره مرسته نۀ کول نۀ دیانتداري وه او نۀ مناسب وو.

په نومبر کال 1826ء کښې ډیوک آف ویلنګټن یو خط مسټر کیننګ ته هم د دې معاملې پحقله دا شان لیکلے وۀ:

"It will not answer to a[illegible]onarchy to be destroyed particularly upon a case of whic[illegible]gression are undoubtedly on the side of the Russians."

ترجمه : "دا مناسب درست [illegible] حکومت دې تباه کیدو ته پرېښودې شي خاص طور په یوه [illegible] چې په هغې کښې بې انصافي او اشتعال بلا شک و شبه د روس د طرف نه دے."

یو بل انګریزي سیاستدان د دې واقعې پحقله دا شان لیکلي دي :

"But though Persia had fairly executed all her share of the treaty in question, the English Minister, when called upon to fulfill this condition, (Article four of the treaty) hesitated, hung back, negotiated, and delayed under every possible pretext, while he could not deny the faith or the claim of Persia. It was clear, however, to all the parties that Mr.Canning only sought a means of escaping the fulfilment of the stipulation. He was hard pressed by the reluctance to engaging in a war with Russia, representated as too probable by the Minister of that Power at the British Court by the dexterity of a first rate female diplomatist, to whom indeed, the management of the matter was fairly confided by the Russian court and whose

influence was fatally effective in this, and the Turkish questions. In affecting to adhere simply to the policy of his predecessors, Mr Canning forgot the immense difference and disgrace of refusing the fulfilment only at the time, when and because, the need was urgent. He could not foresee that Persia must become, if further humbled, the tool of Russia against the East; if he had no earthly power would have balanced against his duty. He did not even percieve that the crisis to Persia had arrived, and contented himself with a double sacrifice to vanity, in assuming to arbitrate against a sovereign Prince and hearing his praises resounded by the lips of successful beauty."

ترجمه : " ولې اګر که ایران د دې عهدنامې د خپلې برخې شرطونه ډیر په ښهٔ شان سر ته رسولي وو خو چې څهٔ وخت انګریزي سفیر نه د دې (یعني د عهدنامې د څلورمې دفعې) د پوره کولو مطالبه وشوه نو هغهٔ لیت و لعل او پس و پیش شروع کړل. جرګې ئ راواخستې او په هره ممکنه بهانه ئ معاملې له ډیل ورکړو. حالانکې هغهٔ د ایران د مطالبې د راشتی او د ایمانداری نه انکار کولے نشو. بهر حال دا خبره هر یو فریق ته ښکاره وه چې مسټر کیننګ د دې شرط نه د وتلو دپاره ځان له چرته لار لټوله. هغهٔ سره د دې خبرې سخت غم وهٔ چې هسې نه د دې شرط په پوره کولو زمونږ روس سره نښته راشي او په دې نښته باندې د روس سفیر مقیم لندن او یوې بلې هوښیارې اول نمبر سیاستدانې ښځې چې هغې ته د روس د حکومت د طرف نه د دې کار انتظام سپارلے شوے وهٔ او په دې معامله کښې او د ترکو په معامله کښې د هغې اثر سخت مضر او مهلک ثابت شوے وهٔ. د هغهٔ پوره پوره یقین راوستے وهٔ په ظاهره خو هغهٔ دا نهٔ وئیل چې زهٔ صرف د خپل متقدم جانشین په پالیسی باندې روان یم ولې د هغهٔ نه په دې دواړو پالیسو کښې چې کوم فرق وهٔ هغه او کوم بدناموسے چې د دې عهدنامې د شرطونو په نهٔ پوره کولو کښې لازمي وهٔ هیر شو. او بیا خاص طور په داسې وخت کښې چې په هغې د عمل کولو ضرورت ډیر سخت وهٔ. هغهٔ ته دومره هم دا خبره ښکاره نشوه چې کهٔ چرې ایران نور زیات سپک شي نو یقیناً به هغه د روس په لاس کښې د نمرختاهٔ د ملکونو په خلاف یو آلهٔ کار شي. کهٔ چرې هغهٔ ته دا ښکاره شوې وے نو د زمکې په سر یو طاقت به هم هغه د خپل فرض د ادائیګی نه منع کړے نهٔ وهٔ. هغه په دې پوهه نشو چې د ایران دپاره سخت د خطرې وخت راغلے دے بلکې هغهٔ په دې دوه رنګی د فخر کولو خوشحالي ځان له ورکړه. یو خو دا چې زهٔ د یو خودمختاره بادشاه برخلاف ثالثي کوم او بله دا چې د یوې کامیابې خوبصورتې ښځې د شونډو نه به خپل تعریفونه واؤرم."

اګر چې په ظاهره انګریزي سیاستدانانو د تهران د عهدنامې د شرطونو په مطابق ځان ایران ته د مالي امداد په ورکولو پړ نهٔ ګڼلو مګر هغوي سره د مخکښې دپاره په دې شرط باندې د عمل درآمد فکر ضرور پیدا شو. پس هغوي ایران سره یو ځل بیا د زړې عهدنامې د

دې شرط لرې کولو دپاره خبرې اترې شروع کړې. په دې ورځو کښې ایران ته د روس د تاوان جنګ په وجه سخت مالي مشکلات پیښ وو. پس انګلستان د خالص بنیاګانو په شان د خپل زوړ عادت مطابق د ایران د احتیاج نه ناجائزه فائده وچته کړه. او سر جان میکډانلډ د حکومت برطانیه د طرف نه ایران له د دوؤ لکو پنځوسو زرو تومانو د ادائیګۍ په دې شرط اقرار وکړو چې سلطنت ایران دې د زړې عهدنامې نه د مالي امداد شرطونه لرې کړې. په دې رقم کښې انګریزانو ایران له صرف دوه لکه تومانه ورکړل او ایران دا شرطونه د عهدنامې نه لرې کړل. دا نۀ وه چې ګني د تهران د عهدنامې په وخت انګریزانو ته دا معلومه نۀ وه چې ایران له د مالي امداد ورکولو شرط به مونږ روس سره په جنګ ونښلوي. مګر چونکې د 1826-27ء په جنګ کښې انګلستان د خپلو فائدو په خاطر روس سره جنګ کول نۀ غوښتل. له دې کبله هغوي په خپلو ټولو اقرارونو باندې سترګې پټې کړې او محض د روس نه د ویرې په وجه ئې خپل ټول اثر په ایران کښې تباه و برباد کړو. او بیا ئې د خپل لوظ او اقرار د ماتولو دپاره قسماقسم بهانې او عذرونه پیدا کړل. دا دیانتداري او ایمانداري ده د هغه مهذبو قومونو چې په دنیا کښې د اخلاقو او د تهذیب د خورولومدعیان دي.

د ترکمانچي د عهدنامې نه پس د روس او د ایران تعلقات مکمله پلټه وخوړله. ایران ته دا ثابته شوه چې روس سره د هغۀ په کشمکش کښې نۀ انګریزان هغۀ سره ملګرتیا ته تیار دي او نۀ فیرنګیان مالي امداد ورکولو ته زړۀ نیوے شي. پس د ایران توجه د فیرنګیانو نه بالکل وښخیده او د روس اثر په ایران کښې لس چنده زیات شو. ایران ته معلومه شوه چې کۀ چرې روس سره زۀ د دوستۍ او د مصالحت لار ونۀ شرم او پخپل اندروني او بیروني معاملاتو کښې د هغۀ په صلاح لاړ نۀ شم نو زما د سلطنت خیر نشته. عین د تکلیف او د مصیبت په وخت کښې د ایران د ځا نه غورځول د انګریزانو دپاره مهلک ثابت شو او ایران هغوي د خپله لاس د روس په غیږه کښې ورغورځولو. ایران پخپلو سترګو ولیدل چې انګریزان باوجود د ټخو اقرارونو او عهدنامو هغوي د روس په جنګ کښې په ډاګه میدان یواځې پرېښودل او پخپله د خیر په ډیرې کښیناستل ځکه چې په دې جنګ کښې انګریزانو ته خپله څۀ فائده په ظاهره نۀ ښکاریده. د پښتو متل دے چې ړوند په موړي یو ځل پریوځي. د ایران دې ترخې تجربې د ایران تمام تر توجه روس طرف ته مائل کړه. د روس سیاسي مدبرانو د ایران د دې ذهني انقلاب نه پوره پوره فائده وچتول غوښتل. چنانچه هغوي اوس دا خیال وکړو چې د روس مشرق طرف ته خپله پیشقدمي خو د انګلستان په زړۀ کښې قسما قسم شکوک پیدا کوي او ممکن ده چې دا په یورپ او په ایشیا کښې انګریزانو سره جګړه پیدا کړي. نو هغوي د خپلو ارادو د تکمیل دپاره اوس د ایران نه آلۀ کار جوړ کړو. روس په مشرقي ممالک باندې پیشقدمي کول خو بدستور غوښتله ولې اوس هغۀ د خپل

عـمـل دپـاره بـلـه لار اختيـار كړه. هغهٔ خپل ځان د پردي نه شاته ودرولو او ايران ته ئ په دې ملكونو باندې د ګواښيدلو لمسه شروع كړه. د روس غرض بالكل ښكاره وهٔ اګر چې روس ايـران تـه د خپـلـو ارادو اظهار نهٔ وهٔ كړے. د روس منشا دا وه چونكې ايران بالكل زما زير اثر دے نـو كـهٔ چـرې ايران په هرات، قندهار، غزني او خيوا وغيره باندې قابض شي نو بيا به زهٔ د ايـران نـه پـه دې ملكونو د خپل فوځي اقتدار د زياتولو اجازت واخلم او په دې شان به د خپلو فوځونو د آمدورفت لار عين د هندوستان تر دروازې پورې ورسوم.

ايـران لـه خـو هـغهٔ تش دومره لالچ وركړو چې دا علاقې ورومبے د ايران په حكومت كښې شـامـل وے او پـكـار دي چې دا علاقې اوس بيا د ايران د حكومت حصه شي. په ايران كښې هـم قـدرتي طور د خپل سلطنت د وسعت شوق پروت وهٔ پس هغوي فوراً د روس دې تجويزونو سره متفق شول. او د نمرخاتهٔ ملكونو د لاندې كولو اراده ئ وكړه.

انـګـريزان ورومبے ورومبے خو د روس د دې چالبازو نه بالكل بې خبر وو هر كله چې روس شپـه او ورځ د ايـران په دربار كښې د خپل اثر و اقتدار په زياتولو كښې مصروف وو نو انـګـريـزانـو د هغې په مقابله كښې هيڅ قابل ذكر كوشش ونكړو. اخر په كال 1831ء كښې شهـزاده عباس د فتـح عـلي شاه زوي څهٔ فوځ د خراسان د تسخير دپاره او څهٔ فوځ د خيوا د خـان بـرخـلاف واستـول. پـه ظـاهره خو د خيوا د خان برخلاف ايران دا تور لګولے وهٔ چې د خيـوا د عـلاقـې خلـق پـه ايـران كـښـې ډاكې غورځوي او د هغې ځاے نه د ايران رعيت خلق تښتـوي او بيـا ئ په طور د مريونو خرڅوي. مګر حقيقت دا دے چې دې دواړو لښكركشو ته د ايـران روس لـمسـولے وهٔ. انګريزانو ته هم د دې دواړو پيشقدمو اهميت ښكاره شو. نهٔ خو هـغوي دا غوښتل چې خيوا دې د روس د اثر لاندې راشي او نهٔ ئ دا غوښتل چې د خراسان په فتح دې د روس اقتدار عين تر هرات پورې راورسي.

روسيـانـو هـم پـه خـان خيوا باندې د روس د علاقې نه د خلقو د تښتولو او د هغوي د مـريـونو كولو تور ولګولو مګر اصلي مدعا ئ دا وه د دې چپاؤ نه چې د خيوا د اخستو نه پس بـه د روس اثـر د افـغـانستان او د تركستان حدود پورې ورسي. مګر هم په دې ورځو كښې د انـګريزانو يو فوځي افسر شهزاده عباس له راغلو. او د ډيرو خبرو اترو نه پس ئ هغه د خيوا د تسـخيـر د ارادې نـه واپـس كړو ولې د خراسان فوځ كشي بدستور جاري وساتلې شوه. او د كال 1832ء تر اخره پورې ټول خراسان مسخر شو.

په كال 1833ء كښې ايران د هرات د اخستو نيت وكړو چنانچه د محمد مرزا چې د شهـزاده عبـاس زوے وهٔ د سـالارۍ د لانـدې يـو لوے لښكر په هرات باندې د حملې كولو په غـرض راروان شـو مـګـر هـم د دې كـال پـه ژمـي كـښـې شهزاده عباس مړ شو او محمد مرزا راواپـس شـو. فتـح عـلـي شاه اوس خپل نمسے محمد مرزا وليعهد كړو. د شهزاده عباس د

مرګ نه قریباً کال پس د کال 1834ء په ژمي کښې فتح علي شاه هم انتقال وکړو او محمد مرزا د هغهٔ په ځاے تخت نشین شو.

محمد شاه د تخت نشین کیدو نه پس بیا د هرات د اخستو اراده وکړه په دې ورځو کښې د انګریزانو سفیر په تهران کښې وهٔ هغهٔ خپل انتها کوښشونه وکړل چې محمد شاه د خپلې ارادې نه واړوم ولې محمد شاه د هغهٔ په یوه خبره هم غوږ کښېنښودو. او په کال 1836ء کښې ئې د حملې تیارۍ شروع کړې. هم د دې کال په اخر کښې محمد شاه باقاعده طور شاه کامران ته د ایران د مکمل اقتدار د منلو او د هغوي د حکومت تسلیمولو مطالبات ورواستول. او یرغمال ئې ترینه وغوښتل. په دې ورځو کښې یار محمد خان د شاه کامران وزیر وهٔ هغهٔ بې درکې د محمد شاه دا ټول مطالبات په ډیره زړورتیا منظور کړل او ورته ئې ولیکل چې تهٔ زمونږ نه یرغمال غواړې ولې مونږه ستا نیکهٔ له چرې یرغمال نهٔ وو ورکړې. او په دې وجه تا له هم نهٔ درکوو تهٔ زمونږ نه تحفې غواړې. د هغې په درکولو کښې مونږ ته هیڅ عذر نشته. څومره چې زمونږ نه کیدے شي هغه هومره ښې ښې تحفې به در واستوؤ. کهٔ چرې بادشاه په دې هم نهٔ رضا کیږي او په مونږ باندې خامخا حمله کول غواړي نو بیشکه دې راځي. تر څو چې مونږ نه کیدے شي تر هغې به مونږ د خپل ملک حفاظت کوؤ کهٔ چرې تاسو مونږ د هغې نه په زور ایستلو نو بیا به پخپله زمونږ ملک تر هغه پورې ستاسو په لاس کښې وي تر کومه پورې چې مونږ کښې بیا دومره زور نهٔ وي پیدا شوے چې ستاسو نه ئې واپس واخلو.

په بادشاه باندې د یار محمد خان دا جواب ښهٔ ونهٔ لګیدو او ډیر خفه شو. وزرا ئې راجمع کړل او د صلاح مشورې نه پس ئې فیصله وکړه چې مخکښې سپرلي کښې به په هرات باندې حمله کول ضروري وي. د 1837ء په سپرلي کښې انګریزي سفیر د محمد شاه او د شاه کامران په منځکښې اخرې ځل د صلح خبرې اترې وکړې خو محمد شاه د هرات د مکمل خودمختارۍ د اخستو نه په څهٔ کم څیز رضا کیدو ته تیار نهٔ وهٔ او یار محمد د خپل ملک د ازادۍ نه لاس وینځلو ته په هیڅ وجه نهٔ رضا کیدلو. شاه کامران هم د یار محمد خان دې رویې سره متفق وهٔ او محمد شاه ته ئې ولیکل چې اګر چې زما په زړهٔ کښې ستا ډیر قدر دے ولې ستا بادشاهي په ځان نشم تسلیم کولے. نهٔ د سکې ضرب ستا په نوم جاري کولے شم او نهٔ خطبه ستا په نوم لوستے شم. د ایران د حکومت یو لوے الزام په یار محمد خان او شاه کامران دا وهٔ چې ستاسو د علاقې خلق هم د ایران په حدود کښې ډاکې غورځوي او د ایران د رعایا په حیثیت د مریونو خرڅوي. د بدقسمتۍ نه په دې زمانه کښې د ترکستان په ټول اسلامي ممالک کښې د غلامانو زبردست تجارت وهٔ هر بادشاه به د بل بادشاه په ملک باندې ډاکې وهلې. او غریب او پرامن رعایا به ئې راوهٔ نیول او بیا به ئې په عام

بازارونو او په منډهو کښې د غوايانو او ميښو په شان خرڅول. خان خيوا د قندوز، خلم، او بخارا ټول اسلامي بادشاهان په دې ناکاره تجارت کښې شپه او ورځ مصروف وو او خپل ځانونه او اسلام ئې د ټول مهذب دنيا په نظر کښې ذليل او بدناموسه کړے وۀ. چونکې د ايران خلق شيعه ګان وو او د روس خلق اکثر عيسايان وو په دې وجه د ترکستان خلقو دا قومونه کافر ګڼل او د هغوي نيول او بيا د غلامانو په طور خرڅول به ئې ثواب ګڼلو. هم د دې بد اعمالو په وجه خدائے وکړۀ چې دوئ ټول د خپل خپل حکومت نه محروم شو او خدائے ئې بيخ بنياد وويستو.

شاه کامران او يار محمد خان محمد شاه د صلح دپاره تر دې حده لاړل چې سالانه خراج ورکولو ته هم تيار شو. د ترکستان په خلاف ايران له د فوځي کومک ورکولو اقرار ئې هم کولو. او دا پوخ لوظ ئې هم کولو چې د هرات د علاقې خلق به هيچرې هم د ايران په حدود کښې ډاکې نۀ کوي او نۀ به غلامان رانيسي. او دې اقرار ته هم تيار شو چې د عهدنامې د دې شرطونو د پوره کولو دپاره به د هرات يرغمال د دوؤ کالو دپاره په مشهد کښې مقيم وي د دې په بدل کښې هغوي د ايران نه صرف دومره اقرار غوښتو چې ايران به د هرات د حکومت په اندروني معاملات کښې هيڅ دخل نۀ ورکوي او شاه کامران به بدستور بادشاه وي. په دې دومره شرطونو هم محمد شاه رضا نشو او دا ئې غوښتل چې هرات مکمل طور زما په حکومت کښې داخل شي.

مسټر ايلس د دې ټولو واقعاتو اطلاع خپل ګورنمنټ ته ورکړه او ورته ئې وليکل چې جنرل سائمونچ روسي سفير مقيم تهران ايران له د دې حملې کولو ترغيب ورکړے دے. هغۀ پخپل تحرير کښې انګريزي وزير خارجه لارډ پا مرسټن ته په دې الفاظو کښې خپله رائ ظاهره کړه:

"I feel quite assured that the British Govt; cannot permit the extension of the Persian monarchy in the direction of Afghanistan with due regard to the internal tranquility of India, for that extension will at once bring Russian influence to the very threshold of our Empire.

The Success of the Shah in this undertaking is anxiously wished for by Russia and her Minister here does not fail to press it on to early execution. The motive cannot be mistaken. Hirat once annexed to Persia, may become according to the commercial treaty, the residence of a Russian Consular agent, who would from thence push its researches and communications, avowed and secret, throughout Afghanistan. Indeed in the present state of the relations between Persia and Russia, it cannot be denied that the progress of the former in Afghanistan is tantamount to the advance of the letter, and ought to receive every opposition from the British Govt; that the obligations of public faith will permit."

ترجمه : "زما دا پوره يقين دے چې کۀ چرې د هندوستان د اندروني امن و امان لحاظ وساتلے شي نو حکومت برطانيه به دا هيچرې هم ونۀ غواړي چې ايران دې خپل سلطنت له د افغانستان په طرف توسيع ورکړي. ځکه چې دا قسم توسيع به روسي اثر سمدستي زمونږ د حکومت عين دروازې پورې راورسي. روس د زړۀ نه غواړي چې شاه ايران دې په دې مهم کښې کامياب شي او د دې ځاے روسي سفير په هغۀ زور اچوي چې د دې معاملې زر تر زره اجرا وشي. د دې حملې د وجې په حقله خو څۀ غلطي کيدے نشي کۀ چرې هرات يو ځل د ايران قبضې ته راغلو نو د تجارتي عهدنامې مطابق به يو روسي قونصل په هغه ځاے کښې استوګنه اختيار کړي او بيا به دا قونصل خپل تفتيشونه او تګ راتګ په پټه او ښکاره په ټول افغانستان کښې کوي. حقيقت دا دے چې د ايران او د روس موجوده تعلقات د دې قسم دي چې په افغانستان کښې د ايران پيشقدمي د روس د پيشقدمۍ برابر ده. او پکار دي چې د دې پاليسي مخالفت د حکومت برطانيه د طرف نه په هر هغه طريقه وشي چې کوم زمونږ د لوظونو او اقرارونو نه خلاف نۀ وي."

د دې نه علاوه هغۀ لارډپامرسټن ته دا هم وليکل چې باوجود زما د ډيرو کوششونو د شاه ايران او د شاه کامران په منځکښې صلح ونشوه. بلکې کوم خط چې په دې سلسله کښې ما د ميجر ټاډ په لاس شاه کامران ته استول غوښتل هغه خط هم د ميجر ټاډ نه ايرانيانو واخستو. يا به الفاظ ديګر هغه د روسيانو لاس ته ورغلو. وغيره وغيره.

د مسټر ايلس د دې خطونو په بنا باندې لارډپامرسټن د روس د حکومت نه دا تپوس وکړو چې آيا د هرات په مجوزه حمله کښې د روسي ګورنمنټ څۀ لاس شته او کۀ نه؟ کرنل نسلروډ د روس وزير خارجه د دې نه بالکل انکار وکړو بلکې دا ئ ورته وليکل چې د ايران په معاملاتو کښې مونږ دواړو حکومتونو له پخپل منځکښې مکمله سمجهوته او مفاهمت پکار دے. لارډپامرسټن ته د روسي وزير خارجه په دې جواب بالکل تسلي ونشوه. او هغۀ مسټر ايلس ته دا وليکل چې سرکار انګريزي روس سره د هرات په معامله باندې خپل تعلقات قطع کول نۀ غواړي او نۀ د هغوي دا يقين دے چې په دې حمله کښې د روس څۀ لاس شته. پس مسټر ايلس له پکار دي چې جنرل سائمونچ سره په اتفاق هغه د ايران بادشاه د دې حملې نه منع کړي. او هغه دې پوهه کړي چې شاه کامران باندې د حملې کولو په وجه به د ايران او د فيرنګيانو تعلقات کشيده شي.

ولې هر کله چې مسټر ايلس پخپلو کوششونو کښې بيا هم کامياب نشو نو په دې قصور هغه د تهران نه واپس کړې شو او د هغۀ په ځاے سر جان ميکنيل په طور د سفير تهران ته وليږلے شو. سرجان ميکنيل قريباً پنځويشت کاله په هندوستان او په ايران کښې تير کړي وو. او دا قسم سړے وۀ چې د شورشونو او غوبل په منځکښې به خوښ وۀ او پخپلو سياساتو

کښې د څۀ اصولو پابند نۀ وۀ. د دې نه علاوه هغه د روس سخت مخالف او دشمن وۀ. لارډپامرستن میکنیل ته هم هغه هدایات ورکړل چې کوم هغۀ ایلس ته ورکړي وو او ورته ئ ووئیل چې په هر شان چې وي نو شاه ایران د هرات د حملې نه اړول پکار دي. اوسر جان میکنیل دې پخپله د شاه کامران او د محمد شاه په منځکښې د صلح خبرې اترې وکړې. میکنیل هم د څۀ جدوجهد نه پس په دې خبرو کښې بالکل ناکام شو او ایراني فوځ په اکتوبر 1837ء کښې د هرات په صوبه کښې داخل شو.

د انګلستان او د ایران په منځکښې کومه عهدنامه چې په 25 نومبر 1814ء کښې شوې وه د هغې یو شرط دا وۀ چې کۀ چرې د ایران او د پښتنو په منځکښې جنګ ونښتو نو فیرنګیان به په هغې کښې غیر جانبدار وي. ولې کۀ چرې دواړو فریقو انګریزي حکومت ته سوال وکړو نو هغوي په دې دواړو حکومتونو کښې راضي نامه کولے شي. چونکې د روسي حکومت د انکار نه باوجود د انګریزانو اوس دا یقین شوے وۀ چې دا حمله ایران د روسیانو په ترغیب او لمسه باندې کړې ده. له دې کبله هغوي ایران سره د دې عهدنامې د شرط هیڅ پروا ونۀ کړه. او ګورنر جنرل کپتان ایلډرډ پوټینګر ئ د هرات د حفاظت دپاره په پټه ولیږلو. او د دې زمانې هندوستاني اخباراتو دا ولیکل چې "په اتفاق سره دا افسران د هرات په ښار کښې د ایران د حملې په وخت په حیثیت د یو سیاح موجود وو او دا هم د دې افسر د مدد او مشورې برکت وۀ او د انګریزانو د هرات خلقو ته د شاباشي نتیجه وه چې هراتیانو نهۀ میاشتې د ایران مقابله وکړه."

د انګریزانو دا زوړ خوئ دے چې څۀ وخت یو کار یا مهم کامیاب شي نو د هغې څهره همیش پخپل سر تړي او چې ناکامیاب شي نو د هغې ملامته په بل ورغورځوي. مقابله خو هراتیانو وکړه وینې د هغوي توئ شوې د محاصرې لوږې تندې مصیبتونه په ډیر همت استقلال او صبر پښتنو رابښکلے ولې فیرنګیانو هم پخپل ملک کښې او هم په هندوستان کښې په یو اواز دا شور جوړ کړو چې کپتان پوټینګر په روس باندې برے وموندو.

دا خبره بالکل غلطه ده چې کپتان پوټنګر هسې اتفاقاً په هرات کښې د جنګ د شروع کیدو وخت کښې موجود وۀ. حقیقت الامر دا دے چې حکومت هند هغه په پټه د یو هندو طبیب په جامه کښې هرات ته استولے وۀ. او په هرات کښې هغه هغې ټولو سوداګرانو پیژندلو چې د فیرنګیانو ملګري وو. ځکه چې د پوټنګر د روپو لین دین به د هغوي په وسیله کیدو. البته شاه کامران او د هغۀ وزیر یار محمد خان هله پسته د هغۀ د رارسیدو نه خبر شو چې ایراني فوځ د هرات د محاصرې کارروائي شروع کړه. او دې انګریزي افسر خپل فوځي خدمات او د خپل حکومت د طرف نه مالي امداد پیش کړو. شاه کامران د خدایے نه نور څۀ غوښتل هغۀ په ډیرې خوشحالی د هغۀ دا خدمات منظور کړل. د دې نه پس پوټنګر د

محاصرې په ټوله زمانه کښې په هرات کښې موجود وۀ. او هراتي فوځ ئ د ایران په خلاف جنګولو. د دې نه علاوه جان میکنیل او په ایران کښې د انګریزي سفارت نور افسران به هم وقتاً فوقتاً هرات ته راتلل او شاه کامران او وزیر یار محمد خان سره به ئ د هرات د بچاؤ په تجویزونو غور او فکر کولو. دې کاروایۍ سره فیرنګیانو د ایراني فوځ په افسرانو کښې ډیر افسران خپلې جنبې ته را اړولي وو.

فیریر وائي چې " اګر کۀ د هرات اخستو دپاره زیات نه زیات پنځویشت ورځې پکار وې مګر ایراني فوځ قریباً نهۀ میاشتې د هرات محاصره وکړه ولې هرات ئ فتح نۀ کړو. محمد شاه په دې ډیر سخت ناراض شو ولې هغه خبر نۀ وۀ چې د هغۀ په جرنیلانو او وزیرانو کښې بعضې داسې کسان هم وو چې هغوي د انګریزانو په جنبه کښې شامل وو. او هغوي د وړومبې نه دا اراده کړې وه چې مونږ به د هرات د اخستو نه بغیر خپل فوځونه واپس کوؤ.

اګر کۀ د روسیانو متعلق د فیرنګیانو دا ګمان چې ایران په هرات باندې د روس په لمسه پیشقدمي کړې ده د یقین درجې ته رسیدلے وۀ خو دا هم یقیني خبره ده چې د حملې په وخت کښې ایراني فوځ سره د روسي حکومت یو ملازم هم د امداد دپاره شامل نۀ وۀ. په هغه ورځو کښې دا مشهوره وه چې سر تیب سمسون خان یو روسي افسر ایراني فوځ سره شامل وۀ. مګر سمسون خان د ډیرې مودې نه په ایران کښې استوګنه کوله او د ډیرې مودې نه هغه د روس نه راتښتیدلے وۀ. د هغۀ خپل فوځي قابلیت هم ډیر معمولي وۀ. او په روسي فوځ کښې د هغۀ عهده کوارټر ماسټر سارجنټ وه. هم دغه شان د لفټیننټ کرنل بلارمبرګ چې یو روسي انجنیر وۀ په متعلق هم مشهوره وه. دا افسر د کاؤنټ سائمونچ د.سفارت یو افسر وۀ ولې دۀ په دې ټوله محاصره کښې په هیڅ فوځي کاروایۍ کښې حصه نۀ وه اخستې. هم په دې شان د جنرل بوروفسکي او د کرنل سمینویو په بابت فیرنګیانو وئیل چې دا روسي افسران د ایران په فوځ کښې د امداد دپاره راغلي وو مګر حقیقت کښې دا دواړه افسران د ایران په فوځ کښې ملازمان وو. او د روس د فوځ سره د هغوي څۀ تعلق نۀ وۀ. د دې یورپي افسرانو نه علاوه په ایراني فوځ کښې هرڅومره افسران چې وو هغه ټول ناقابل او د فوځي علم نه ناواقف وو. شاه ایران کرنل سمینویو له د توپ خانې د انجنیرانو کمانډ ورکړو او چیف آف دي سټاف ئ مقرر کړو.

ایراني فوځ ورو ورو د هرات په طرف راروان شو او څۀ وخت چې غوریان قلعې ته راورسیدو نو هغوي سره قریباً شپږ دیرش زره فوځ یوه ښه توپخانه او ښۀ ډیر سامان جنګ موجود وۀ. غوریان ډیره مضبوطه قلعه وه چې د هرات نه پنځۀ دیرش میله قبلې ته په لس میله پلن یو میدان کښې پرته وه. د پښتنو فوځونه په دې قلعه کښې د سردار شیر محمد خان چې د یار محمد خان ورور وۀ د سالارۍ د لاندې پراتۀ وو. ایراني فوځ وړومبې په دې قلعه حمله

وکړه. د حملې په وخت محمد شاه د ایران بادشاه پخپله موجود وۀ د څۀ معمولي ګوله بارۍ نه پس کرنل سمینویو دا قلعه واخسته. او د هغې نه پس هغه نیغ د هرات د محاصرې دپاره روان شو. ایراني فوځ د نومبر په شروع کښې د هرات خواۀ شاه ته را ورسیدل. شیر محمد خان د غوریانو د ګوله بارۍ نه او د ایراني فوځ د ظاهري نمائش نه ویریدلے وۀ هغۀ یار محمد خان ته خط ولیکلو چې " د ایران فوځ سره مقابله کول ناممکن دي د هغوي توپخانه دومره زبردسته ده چې په اتۀ څلویښت ګینټو کښې به هرات لوټې لوټې کړي. او کۀ دې ایراني فوځ سره مقابله وکړه نو خپل وطن او ځان به تباه کړې. پس تا له پکار دي چې ایران سره صلح وکړې. او هرات هغوي ته حواله کړې. یار محمد خان پخپله هم د نقصونو نه ډک وۀ ولې د غیرت او د وطن پرستۍ جذبه د هغۀ په خټه کښې اغږلې شوې وه. هغۀ له د خپل وررور په کمزورۍ او په پریشانۍ ډیر قهر ورغے او په جواب کښې ورته ولیکل چې " ما تا ته دا قلعه د دې دپاره حواله کړې وه چې تۀ ئې د دشمن د لاسه بچ وساتې مګر هرکله چې تا د هغې بچاؤ کښې ځان مړ نکړو او خپل فرض دې ادا نکړو نو ماته داسې د بزدلۍ نصیحت څله کوې؟ تر څو پورې چې ما سره یو کارتوس هم وي او تر څو پورې چې زما په لاس کښې توره وي او ساه را کښې غړېږي نو زۀ به خپل سر قاجاریانو ته هیڅ کله ټیټ نۀ کړم. زۀ به هرات تر هغه ایرانیانو ته حواله نۀ کړم تر څو چې ما خپل غاښونه چې کوم عباس مرزا زما نه په مشهد کښې ایستي وو ګټلي نۀ وي. او کۀ بیا هم د جنګ نتیجه زما خلاف شوه نو زۀ به جنګ کښې د مړ کیدو په چل ښۀ پوهیږم."

فیریر په خپل تاریخ کښې د یار محمد خان د دې جواب په حقله لیکي :

" He kept his word and his heroic defence during nine months is one of the finest military exploits which modern History furnishes in Asia."

ترجمه : "او هغۀ دا خپل لوظ ښۀ ټینګ کړو هغۀ د نهو میاشتو په عرصه کښې چې کومه مردانه فوځي مقابله ایران سره وکړه د هغې نظیر د ایشیا په موجوده تاریخ کښې بیاموندل مشکل دي."

محمد شاه خپل فوځونه د هرات نه قبله په سهیل د لوي نهر په ښي غاړه دیره کړل او څۀ وخت چې د هغۀ فوځ رایوځاے شو نو سمدستي ئې د ښار نه چاپیره واچول او په درویشتم نومبر 1837ء ئې د هرات باقاعده محاصره شروع کړه. د محاصرې د شروع په وخت کښې ایراني فوځ په شمار کښې قریباً څلویښت زره وۀ او پښتانۀ چې د چا په ذمه د ښار د حفاظت کار سپارلے شوے وۀ هغه څلور زره تنه وو. چونکې یار محمد خان ته د ډیرې مودې نه دا خبر لګیدلے وۀ چې ایرانیان په هرات باندې د پیشقدمۍ نیت لري له دې کبله هغۀ د خوراک څښاک سامان د بچ کولو په خاطر دا دومره لږ کسان ځان سره وساتل. په وړومبي ورځ د ایرانیانو فوځ د ښار د مضافاتو د اخستو دپاره حمله وکړه . دې خوا پښتنو قدم په قدم د

هغوي مقابله په ډېره بهادري وکړه. په هر کور کښې، په هره ونه کښې او د هر ديوال په شا د پښتنو لښکر مورچه کړې وه. او په حمله آور فوځ ئې داسې بې دريغه او مسلسل گوله باري وکړه چې چپه په چپه د دواړو فوځونو په منځکښې لاس په لاس جنگ وشو. پښتنو سره يو څو لويې توپې هم وې هغه هغوي په چارچاپيره برجونو او شينګرو کښې لګولې وې. په دې توپو هغوي په ايرانيانو په دا شان گوله باري وکړه چې د بټ د نينو په شان ئې وراتۀ کړل.

سره د دې دشمن ته لويه فائده د هغۀ د زياتوالي وه او چونکې پښتانه د هغوي په نسبت ډېر لږ وو هغوي سره دا فکر شو چې هسې نه مونږ د چارچاپيره نه راګير شو او د ښار فوځ سره مو د آمدورفت لار بند شي. له دې کبله د ټولې ورځې د جنګ نه پس ماښام هغوي د ښار مضافات پريښودل او ښار ته رادننه شول. او ايرانيان د فصيل نه بهر پريوتل او د ښار د بهر د تګ راتګ لارې ئې بالکل بندې کړې. د دې نه پس ايرانيانو بيشماره حملې د ښار د اخستو دپاره وکړې. مګر هيڅ څۀ خاص کاميابي هغوي ته حاصله نۀ شوه. دې خوا روس او د انګريزانو د رقابت جنګ بدستور جاري وۀ. روسيانو به شاه ايران له ترغيب ورکولو چې هر څومره زر کيدے شي د هرات فتح کول پکار دي او انګريزانو د ايراني فوځ لوي لوي افسرانو سره ساز باز کړے وۀ چې تاسو به د هرات په فتح کولو کښې رکاوټونه پيدا کوئ. هم د دې سازشونو په وجه د ايراني فوځ د سپه سالارئ په عهده باندې هم جګړه شروع شوه. کرنيل سمينويو دا غوښتل چې د محاصرې د کل کارروايئ انتظام او کمان دې زما په لاس کښې وي مګر نورو ايراني افسرانو د دې مخالفت کولو او د سپه سالارئ عهده به هر چا د ځان دپاره غوښتله. په دې طريقه د روس او د فيرنګيانو په مشرق کښې د رقابت په وجه د ايران او د پښتنو په منځکښې دا قسم جنګونه وشول او د دې دواړو مسلمان قومونو مالي او جاني نقصان تر دې حده وشو چې تر کلونو هغوي د دې نقصاناتو نه خپل ځاے ته رانغلل. حقيقت کښې فائده او نقصان خو د روس او د فيرنګيانو وۀ مګر د پښتنو او د ايران د محتاجو او ضرورتونو نه هغوي فائده وچتوله او په ځاے د دې چې هغوي پخپلو کښې جنګيدلے وے نو هغوي به د خپل غرض او مطلب دپاره دا دواړه قومونه د خپلې بې وقوفۍ په وجه جنګول.

ايرانيانو د هرات د ښار قريباً نهۀ مياشتې محاصره وکړه په دې عرصه کښې کومې کومې معرکې او مقابلې چې د ايران او د پښتنو د لښکر په منځکښې وشوې د هغې تفصيل بيانول ممکن نۀ دي مګر خلاصه دا ده چې پښتنو په ډېرې ځوانمردئ د خپل ښار په حفاظت کښې مالي او جاني قربانئ ورکړې. فيرير وائي چې : کله کله خو به د پښتنو يو څو سوارۀ د ښار نه راووتل او د ايراني فوځ په ثابته پلټنه به دا شان په زور او په استقلال راپريوتل چې تر کومه پورې به ئې د هغوي نه ډېر خلق وژلي نۀ وو او لا به ئې قيديان کړي نۀ وو تر هغې به نۀ واپس کيدل. او کله کله به د هغوي يو معمولي شان دسته راووته او تر هغې به ايراني فوځ

سره جنګېدله چې يو زنده سر به په هغوي کښې پاتې نشو. اکثر خو به پښتنو لاس په لاس د وښکلو تورو جنګ کولو. يوه ورځ هغوي په پوره دوؤ پلټنو حمله وکړه او د ايرانيانو نه ئې پوره څلور سوه تنه مړهٔ کړل. او دوه توپې ئې ترينه يوړې. اخر کار ايراني فوځ د دې حملو نه تنګ شو د هغوي خرڅ خوراک هم په ختميدو راغے. هر کله چې به هغوي د فوځ دستې د خوراک سامان راوړلو دپاره بهر کلو، ته ووتلې نو ځاے په ځاے به د پښتنو د اولس خلق پټ ناست وو او ټول سامان بـه ئې د هغوي نه تالا والا کړو. اګر چې په شروع شروع کښې د هرات پـه خواوشا کښې د خوراک څښاک سامان په اسانه لاس ته راتلې شو او دريو څلورو مياشتو پورې ايراني فوځ هم په دې طريقه ګزاره وکړه. مګر چونکې د هغوي په فوځ کښې بدانتظامي او د افسرانو پـه منځکښې بې اتفاقي او ناچاقي وه. دا سامان په لږه موده کښې خلاص شو او ټول لښکر بې خوراکه بې سامانه پاتې شو اوس د محمد شاه فوځ په شوتل او د ونو پـه پاڼو او جرړو ګوتې پورې کړې. د خوراک د نهٔ موجودګۍ په وجه سپاهيانو او افسرانو ته سخت تکليفونه او مصيبتونه پيښ شول او يوه عامه بې چيني په ايراني فوځ کښې رادوڅاره شوه.

د پښتنو قلعه بند فوځ هم څهٔ په ډير ښهٔ حال نهٔ وهٔ د هغوي خوراک هم په خلاصيدو وو او پـه دې سبب هغوي هم په سخت تکليف او مصيبت کښې ګرفتار وو مګر يار محمد خان يو زبردست منتظم سړے وهٔ تر نهو مياشتو هغهٔ د خپلې دور انديشۍ په وجه په ډير حسن انتظام د خوراک څښاک ذخيره پـه قدر قدر په فوځ کښې تقسيموله او هيڅوک ئې هم فضول يـا زياتي خرڅ تـه نـهٔ پريښودل مګر اوس د هغهٔ دا ذخيره بالکل ختمه شوه. اوس د هغوي ګزاره د اسونو او د اوښانو د قچرو او خرونو په غوښه باندې وه او هر طرف ته په ښار کښې د ډوډۍ قات شو. د اوبو نهر ايرانيانو د وړومبے نه شلولے وهٔ له دې کبله هغهٔ خپل سپاهيان پـه تالاونو او د ښار پـه کويانو باندې ودرول او هر چا ته به ئې د خپلې حصې او ضرورت مطابق اوبهٔ ورکولې ولې اوس يار محمد خان او د هغهٔ د فوځ لوي لوي افسران پـخپلـه د خوراک د لاسه دومره تنګ شول چې ډيرې ورځې ئې بې ډوډۍ تيرې کړې مګر دې تکليفونو او دې سختو د هغهٔ په استقلال او اراده کښې هيڅ کمزوري پيدا نهٔ کړه او د مقابلې کوششونه ئې بدستور جاري وساتل. د ډيرو جنګونو او معرکو په سبب د پښتنو هغه څلور زره فوځ اوس قريباً نيمې ته رسيدلے وهٔ مګر د ښار رضا کار د هغوي په ځاے سمدستي برتي شول او دغه شان ئې دا کمے پوره کړو.

د ښار خلق چې د لوږو او تندو نه بې حاله شول او ډير سړي په هغوي کښې هلاک شول نو يار محمد خان له په فرياد راغلل او تجويز ئې پيش کړو چې محمد شاه سره صلح پکار ده. دې خلقو سره شاه کامران او د هغهٔ د مجلس ياران هم شامل وو. شاه کامران په دې

نازک وخت کښې هم د شرابو په نشه کښې غرق پروت وهٔ د هغهٔ صلاح کاران په دې مشوره کښې یو خو جلال الدین د هغهٔ زوے او بل سردار شمس الدین خان د هغهٔ اوښے وهٔ. جلال الدین په دې ورځو کښې د سبزوار او شمس الدین خان د فراه ګورنر وهٔ. او ځان سره ئې یو زر تنه پوپلزي د جنګ دپاره راوستي وو. یار محمد خان د دې ټولو کسانو یوه جرګه وکړه چې په هغې کښې هغهٔ د ټولو د طبع تسلی دپاره ډیرې د زړورتیا خبرې وکړې او ورته ئې ووئیل چې د ایرانیانو اطاعت منل د پښتون قوم دپاره ډیره لویه د بې عزتی او د بې غیرتی خبره ده. سردار دین محمد هم په زوردارو الفاظو کښې د هغهٔ په مرسته کښې تقریر وکړو. او وې وئیل چې د غلامی د ژوند نه مرګ ډیر غوره دے. مونږ له پخپل قام او ملک باندې ځانونه قربانول پکار دي چې د همیش دپاره زمونږ د استقلال او د بهادری نیک نوم راتلونکے پښتون کښې پاتې شي. کپتان پوټنګر هم په دې جرګه کښې شامل وهٔ د هغهٔ خپله قومي فائده په دې کښې وه چې دا وختي ایران د هرات نه ناکام او ماتې خوړلې واپس شي. چنانچه هغهٔ هم خپل اواز یار محمد خان او سردار دین محمد سره یو کړو. اخر فیصله په دې وشوه چې د هرات حفاظت تر اخر دمه خو په هر پښتون فرض دے. او په هیڅ وجه ایران ته سر ټيټول پکار نهٔ دي. هر کله چې دا فیصله وشوه نو جلال الدین او سردار شمس الدین د بې غیرتی څادر واغوستو او د محمد شاه فوځ ته وتښتیدل.

حقیقت دا دے چې د سدوزو د شاهي خاندان نه د حکومت کولو اهلیت او صلاحیت په دې ورځو کښې بالکل وتے وهٔ او د خپلو نیکونو احمد شاه او تیمور شاه د اولوالعزمی روایات ترینه هیر شوي وو. د حکومت د خزانې نه د مطلق العنان مالک کیدلو په سبب او په دې وجه چې د عامو خلقو په زړونو کښې د دوئ د پلار نیکهٔ د لویو کارنامو یاد لا تازه پروت دے او له دې کبله به خلقو دوئ ته هم باوجود د دوئ د بدعملی او پلیتې زندګی د احترام او د قدر په نظر کتل. د سدوزو دې شاهي خاندان په ځاے د عیش و عشرت ژوندون اختیار کړو او د ټوپک او د تورې په ځاے ئې شراب او نورې بدکاری راواخستې. د مطلع العنان شخصي حکومت لازمي نتیجه د څهٔ مودې نه پس دا شي چې بادشاه خپلې ذاتي فائدې او ښیګړې له د ملک او د قوم په ښیګړو باندې ترجیح ورکوي. او په خپل ارام او عیش باندې د قوم او د ملک خلق قربانوي. هم دغه وجه ده چې په اصلي اسلامي حکومت کښې بادشاهي او حکومت په میراث نهٔ رسي بلکې د عامو خلقو په انتخاب باندې خلیفه او حاکم مقررېږي.

هر کله چې یو خوا د پښتنو او د ایرانیانو په منځکښې د تورو ټوپکونو جنګ روان وهٔ نو بل خوا د فیرنګیانو او د روسیانو پخپلو کښې سیاسي او کاغذي جګړه جاري وه. د ایراني فوځ د هرات په طرف د روانیدو نه وړومبے د سر جان میکنیل دا خیال وهٔ او دا خیال هغهٔ خپل

گورنمنټ ته په خطونو کښې ظاهر کړے وۀ چې د محمد شاه مالي حالت دومره خراب دے چې د هغۀ دپاره لس زره تنه هم میدان جنگ ته راوپستل مشکل دي. ولې هر کله چې د هغۀ دا رائ غلطه ثابته شوه او ایراني فوځ قریباً څلویښت زره تنه تیار شو او حمله ئ هم شروع کړه نو هغۀ وړومبے خو کرنل سټالرډ هرات ته په دې غرض واستولو چې تۀ محمد شاه د پیشقدمی کولو نه راواړوه مگر هر کله چې هغه په دې مقصد کښې کامیاب نشو نو هغه په خپله هرات ته د محمد شاه سره د خبرو دپاره راغلو. محمد شاه له هغۀ د حکومت انګریزي د سخت خفګان دباوونه هم ورکړل او منت ئ هم وکړو. او ورته ئ ووئیل چې د هرات د اخستو اراده پریږده. ولې محمد شاه هغۀ ته ووئیل چې په دې معامله کښې زۀ د خپل اختیار او واک خاوند نۀ یم. زۀ روس هم د ځان نه ناراضه کولے نشم او ستاسو د خفګان طاقت هم په ځان کښې نۀ وینم له دې کبله د ټولو نه ښه خبره دا ده چې سر جان میکنیل دې ماته په صفا الفاظو کښې دا تحریر کړي چې کۀ چرې ایران د هرات د اخستو د ارادې نه نۀ واپس کیږي نو فیرنګیان به په ایران باندې حمله وکړي. په دې صورت کښې به بیا زۀ ضرور واپس شم. مګر تر څو پورې چې فیرنګیانو ماته غوټ پرې کړي هم دغه شان ونۀ وائي نو روس ته هم ځۀ جواب کولے نشم.

د دې نه پس میکنیل د یار محمد خان او د محمد شاه په منځکښې د صلح کولو دپاره هم ډیر کوشش وکړو او قریب وه چې هغه په دې کښې کامیاب شوے وے ولې په دې منځکښې روسي سفیر کاؤنټ سائمونچ هم د محمد شاه کیمپ ته راورسیدو. او د هغۀ په لمسه د صلح دا ټولې خبرې پاتې شوې. سر جان میکنیل د دې ټولو معاملاتو په سلسله کښې یو رپورټ خپل حکومت ته استولے وۀ چې د هغې نه د ذیل اقتباسات د دلچسپی نه خالي نۀ دي :

" Agreeably to intelligence communicated to me by Col. Stoddart, it appears that when one of my courtiers was returning from Hirat the capital, some horsemen were dispatched from the Royal camp in the pursiut of him. Who prevented him from continuing his journey, and brought him to the camp, when he was treated with great violance and indignity, subsquently, when Col Stoddart had waited on his excellency the Haji, and explained to him that the above person was in my service and when the persian govt; was apprised that he was attached to my establishment, even then an order was issued for placing him in guard, and he recieved extreme ill treatment from Haji Khan "Karahreghee" who used every discription of threat towards him.

It is reported and believed at Tehran, that the Russia Minister has announced the intention of his Govt; if the Shah should succeed in taking Hirat, to release Persia from the engagement to pay the balance of the debt due by her to Russia, and the reason assigned for this act of grace is , that the Emperor desires

to contribute that amount towards defraying the expenses of the compaign.........

The most obious impediments to the interference of great Great Britain in the quarrel between Persia and Hirat is the stipulation contained in the ninth article of the treaty of Tehran, but it can hardly be agreed that this article binds us to permit the unjust and wanton destruction by Persia of the most valuable defences of India while the Shah appears to be acting in consort with and promoting the influence in those countries of, that very power whose exclusion from them has become the chief object of the alliance with his Persian majesty. And as I find that the Govt; of India Entertains the opinion that the preservation of the integrity of Hirat is of vital importance, I have determined to proceed to the Shah's camp, and to endeavour, by every means in my power, to induce his majesty to conclude a treaty with Shah Kamran, and to raise the siege of Hirat.

*Article 9 of the treaty of 1814 with Persia runs as follows :*

*"If war should be declared between the Afghans and the Persians, the English Govt; would not interfere on either sides, unless its specific mediation should be solicited by both the contending parties."*

Count Simonich has contented himself with dispatching a messanger, and with inducing Mirza Masood to address me a letter, remonstrating against my going to the camp, on the pretext that from the opinion entertained by people generally of the views on which I act, my presence in the camp will tend to strengthen the Afghans, which will be injurious to the Persian Govt;.

According to what you yesterday mentioned verbally in the apartment of his excellency the Beglarbigi, it would appear that you intend speedily to proceed to the camp of his majesty, etc, the Shah and as, in consequence of certain circumstances which have occurred, and of certain others which friends and enemies have conjectured and imagined to be connected with these, you excellency's presence during the seige of Hirat will certainly and undoubtedly produced greater confidence and resistance on the part of the besieged, and this is obiously injurious to the interest of this proud and ever enduring Empire, and the British Govt; certainly cannot desire to cause and injury to this state, therefore I request your excellency, if possible, to abandon this journey or to postpone it for a time, till instructions on the subject can be received from his majesty the Shah.

At Ghorian I received a letter from the deputy of foreign affairs, conveying me the Shah's desire that I would not advance beyond that place, as my presence could not fail to incourage the Hiraties in their resistance. I replied, that my duty to my own Govt; and even to the Shah precluded the possibility of my complying with his majesty request, which I greatly regretted as it was at all times my anxious desire to comply with the wishes of the Shah. Next day I came in one march to the camp, all the attention usually paid on such an occasion were omitted, and I have reasons to believe that all my acquaintances in camp were either directly forbidden

to visit me, or received hints to the same effect which could not be misunderstood, yet I took no notice of these slights.

On the morning of the 20th before I had yet left the town, I heard of the arrival of Count Simonch in the camp, and I ceased to hope that the adjustment of the differences between Persia and Hirat were on the point of being effected. On my return to the camp, I found that Shah's views had undergone an important change; his manner was more abrupt and peremptory, and he at once rejected the proposed agreement.

In about an hour the firing recommenced, and from that time the seige was prosecuted with renewed activity, for Count Simonch give his advice as to the best manner of conducting it and employed an officer of the Etat-Major, belonging to his suite to construct batteries and to carry on other offensive operation against the town. The Shah became elated with success. The Russian Minister furnished a sum of money to be given to the Persian soldiers; and his countenance, support and advice confirmed the Shah in his resolution to grant no conditions of Afghans of Hirat.

I have had the honour to report to your Lordship that more than one attempt at negotiation had failed.

I need no repeat to your Lordship my opinion as to the effect which such a state of thing would necessarily have on the internal tranquality and security of British India, and I cannot concede that any treaty can bind us to permit the prosecution of schemes which threaten the stability of the British Empire in the East. The evidence of consort between Persia and Russia, for purposes injurious to British interest is unequivocal, and the magnitude of the evil with which we are threatened is, in my estimation, immense and such as no power in alliance with great Britain can have a right to aid in producing.

ترجمه : کوم خبر چې ماته کرنل ستهدارټ راکړے دے د هغې نه رامعلومیږي چې څۀ وخت زما يو ډاکي د هرات نه دارالخلافې ته واپس ما له راروان وۀ نو د شاهي کيمپ نه يو څو سوارۀ د هغۀ په تعاقب پسې را روان شو او هغه ئ د مخکښې تلو نه منع کړو او کيمپ ته ئ راوستو. په هغه ځاے کښې هغۀ سره ډير خراب او د بې عزتۍ سلوک وشو. د دې نه پس هر کله چې کرنل ستهدارټ د هز ايکسلنسي حاجي په خدمت کښې حاضر شو او ورته ئ ووئيل چې دا ډاکي زما نوکر دے او هر کله چې حکومت ايران ته دا اطلاع ورکړې شوه چې دا سړے زما د عملې سړے دے نو بيا هم هغوي حکم وکړو چې دا سړے دې د پهرې د لاندې کښينولے شي. او بيا هغۀ سره د حاجي خان کرابريغي د طرف نه ډير خراب سلوک وکړې شو او هغۀ له ئ د هر قسم دهمکې ورکړې.

په تهران کښې دا خبره مشهوره ده او خلق پرې اعتبار هم کوي چې روسي سفير دا اعلان کړے دے چې کۀ چرې شاه ايران د هرات په اخستو کښې کامياب شو نو روسي

حکومت به د هغې قرضې ټوله بقايا د ايران حکومت ته پرېږدي کومه چې د روس د حکومت د هغوي په ذمه ده او د دې رعايت وجه دا ښودلې شي چې د شهنشاه روس دا منشا ده چې دا رقم هغه د دې مهم د خرڅ اخراجات دپاره په ځان کېږدي......

د ايران او د هرات په دې جګړه کښې د فيرنګيانو د مداخلت کولو په لار کښې چې کوم ښکاره شرط مانع دے هغه د عهدنامۀ تهران نهم شرط(۱) دے مګر دا هيڅوک هم نشي منلے. چې دا شرط مونږ په دې خبره مجبوروي چې مونږ دې ايران دې ته پرېږدو چې هغه دې د هندوستان يو ډېره اهمه حفاظتي څوکۍ تباه کړي. حالانکې دا معلومه خبره ده چې دا وخت شاه هم د هغې حکومت په صلاح او مشوره روان دے. چې د چا په دې ملکونو کښې د نۀ پرېښودو دپاره زمونږ او د شاه ترمنځه عهدنامه شوې ده.

او چونکې ما ته دا معلومه ده چې د ګورنمنټ هند په رائ کښې د هرات خودمختاري محفوظ ساتل ډېر اهميت لري نو ما د شاه کيمپ ته د تلو فيصله کړې ده چې د دې خبرې کوشش وکړم چې په هره وجه چې وي چې زۀ شاه له ترغيب ورکړم چې هغه شاه کامران سره صلح وکړي او د هرات محاصره وچته کړي. کاؤنټ سائمونچ صرف دومره کار کړے دے چې هغۀ خپل يو قاصد مرزا مسعود له استولے دے. او د هغۀ په وينا مرزا مسعود ما ته يو خط ليکلے دے چې زۀ دې د شاه کيمپ ته نۀ ځم او وجه ئې دا ښودلې ده چې د عامو خلقو په خيال کښې چې کوم زما طرز عمل پاتې شوے دے د هغې نه دا معلومېږي چې په کيمپ کښې زما موجودګي به د پښتنو د تقويت باعث شي. (د خط مضمون دا دے)

کومې خبرې چې تا ما سره د هز ايکسلسني بګلربګي په کمره کښې پرون کړې دي د هغې نه دا معلومېږي چې تۀ سمدستي د شاه کيمپ ته تلل غواړې او چونکې بعضې دا شان واقعات پيښ شوي دي او بعضې نورې داسې خبرې هم شته چې د دوست او د دشمن په ذهن کښې د هغې خبرو دې واقعاتو سره سلسله جنګيدلې ده. چې د هغې نه دا معلومېږي چې د هرات د محاصرې په دوران کښې ستا موجودګي به د محصورينو په زړۀ کښې تقويت او د مقابلې طاقت زيات کړي او دا خبره په ظاهره او باهره د دې حکومت دپاره مضره ده. حالانکې حکومت برطانيه دې حکومت ته هيڅرې هم څۀ نقصان ورکول نۀ غواړي. په دې وجوهاتو زۀ هز ايکسي لنسي ته دا درخواست کوم چې کۀ چرې ممکن وي نو تۀ دې د تلو دا اراده پرېږدې او کۀ نۀ وي تر هغه وخته پورې ئې ملتوي کړه تر کومه پورې چې ماته څۀ مزيد هدايات په دې باره کښې د شاه د طرف نه موصول شوي نۀ وي.

---

(۱) د عهدنامۀ تهران چې د انګريزانو او ايران په منځ کښې په 1814ء کښې شوې وه نهم شرط دا وۀ کۀ چرې د پښتنو او د ايرانيانو په منځکښې جنګ ونښتو نو انګريزان به په يو طرف هم دخل نۀ ورکوي ترڅو پورې چې دواړو فريقو هغوي ته د ثالثي دپاره درخواست نۀ وي کړے.

د غوريان په مقام باندې ماته د نائب وزير خارجه د طرف نه يو خط موصول شو چې په هغې كښې هغۀ ماته ليكلي وو چې د شاه دا خوښه وه چې زۀ دې د غوريان نه په وړاندې نۀ ځم ځكه چې زما د موجودګۍ په وجه به د هراتيانو د مقابلې جذبات زيات شي ما ورته په جواب كښې ووئيل چې كوم فرائض په ما باندې د خپل حكومت د طرف نه عائد كيږي او كوم چې د شاه د طرف نه هم عائد كيږي هغه ماته د دې اجازت نۀ راكوي چې زۀ د دې خط تعميل وكړم. اګر كۀ ماته په دې خبره ډير افسوس دے ځكه چې زما هر وخت دا خواهش وي چې زۀ هر كار د شاه د منشا مطابق وكړم.

په بله ورځ زۀ شواشو كيمپ ته ورغلم زما كوم خاطر تواضع چې عام طور سره په داسې موقعو باندې كيږي هغه بالكل چا ونۀ كړه. او زما دا هم يقين دے چې په كيمپ كښې زما څوك واقفان وو هغوي ته يا خو صفا حكم وركړے شوے وۀ او يا ورته ښۀ په اشارو كښې وئيلي شوي وو چې هيڅوك به هم زما ملاقات له نۀ راځي. مګر ما د دې ټول سپكاوي څۀ خيال ونۀ كړو.

د شلم تاريخ په سحر چې زۀ لا د هرات د ښار نه هم نۀ وم راووتے چې ما واؤريدل چې كاؤنټ سائمونچ كيمپ ته رارسيدلے دے له دې كبله زما دا اميد قطع شو چې ګني د ايران او هرات د اختلافاتو فيصله به په راضي نامه سره وشي. هر كله چې زۀ كيمپ ته واپس شوم نو ماته معلومه شوه چې د شاه په خيالاتو كښې لويه تبديلي راغلې ده. د هغۀ جوابونه غوټ پريكړي او مختصر وو. او هغۀ سمدستي مجوزه راضي نامه نامنظور كړه.

قريباً د يوې ګينټې دننه دننه ګوله باري بيا شروع شوه او د هغې ساعت نه پس د محاصرې كارروائي په نور سخت والي جاري شوه. ځكه چې كاؤنټ سائمونچ هغوي ته د محاصرې چلولو دپاره ښۀ ښۀ هدايات وركړل او خپل يو افسر ئې ورله د دمدمو د جوړولو او د نور جارحانه كارروايۍ كولو دپاره وركړو. بادشاه په دې كاميابۍ ډير خوشحاله شو او د روس وزير څۀ روپۍ هم وركړې چې په ايراني فوځ كښې په طور د انعام تقسيم شي. د كاؤنټ سائمونچ مرستې او هدايات بادشاه نور هم په دې خپله اراده كښې مضبوط كړو چې د هرات پښتنو سره په هيڅ شرط هم صلح كول نۀ دي پكار.

ما لارډ صاحب ته وړومبے هم رپورټ ليږلے دے چې زۀ د صلح كولو په كوشش كښې د يو ځل نه زياتي ناكام شوے يم. ما ته د دې رائې په بار بار ظاهرول غير ضروري ښكاري چې د دې صورت حال اثر به لازمي طور د هندوستان په اندروني امن و سكون باندې څومره ډير خراب وي او زۀ دا بالكل نشم تسليمولے چې مونږ د يوې عهدنامې د شرطونو په وجه هم د دې خبرې د پابندو په وجه مونږ دې د دا شان سازشونو د كامياب كيدلو اجازت چا له وركړو چې هغه په مشرق كښې د انګريزي سلطنت په استحكام كښې خلل واچوي. د

ایـران او د روس پـه مـنـځـکـښـې چې کـوم سـازش د بـرطانیې د مفادو برخلاف شوے دے د هـغـې متعلق شهادت بې شک و شبه درست دے. او کوم نقصان چې مونږ ته د دې سازش په وجـه پـیـښـیـدونـکـے دے هـغـه زمـا پـه رائ کښې بیحده ډیر زیات دے او د کوم حکومت چې حـکـومـت برطانیې سره اتحاد وي هغۀ ته دا هیڅ حق نشته چې هغه دې برطانیې ته د نقصان په رسولو کښې بل چا سره امداد وکړي.

او س مـیـکـنـیل دا اراده وکړه چې په هره وجه چې وي او د حکومت انگریزي او ایران پـه منځکښې د سیاسي تعلقات قطع کولو دپاره څۀ بهانه پیدا کول پکار دي. میکنیل د هرات د حـمـلـې پـه وجـه خـو ایران سره رټ په رټ سیاسي تعلقات نشو پریښودلې ځکه چې دا څۀ جـائـزه وجـه نۀ وه. د دې کبله هغۀ ایران سره د نښتې پیدا کولو د پاره د بل څۀ وجې په تلاش کښـې شـو. دا بهـانـه د هغۀ په لاس دا شان راغله چې محمد شاه حکم کړے وۀ چې هیڅوک دې هـم د هـرات ښـار سـره تـګ راتـګ نۀ کوي مګر سر جان میکنیل قلعه بند فوځ سره خپل خط و کتابت باقاعده جاري ساتلے وۀ. چنانچه یوه ورځ د میکنیل یو قاصد د هرات د ښار نه د میکنیل په نوم باندې یوه چیټهی راوړه نو ایراني فوځ هغه قاصد گرفتار کړو او محمد شاه ته ئ پـیـش کـړو. مـحـمـد شاه صرف د فیرنگیانو د لحاظ او د ویرې نه قاصد ته نور څۀ خو ونۀ وئیل او د هغۀ نه ئ هغه چیټهی واخسته او میکنیل ته ئ هغه خط سره د دې درخواست واستولو چې آئـنـده مـونـږ له دا موقع مۀ راکوه چې ستا خطونه دغه شان ونیسو. په فوځي لحاظ خو محمد شـاه پـه دې کښـې بالکل په راستۍ وۀ ځکه چې باوجود د هغۀ د حکم نه میکنیل له د قلعه بند فوځ سره خط و کتابت کول سخت جرم وۀ او له دې کبله محمد شاه ته دا حق حاصل وۀ چې د هغۀ دا خط ئ نیولے وے مګر چونکې حق همیشه د هغې کس په طرف وي چې چا سره زور او طـاقـت وي په دې سبب میکنیل فوراً یوه واویلا او شور جوړ کړو چې زما لوے سپکاوے او هتک وشـو. او د هـغـۀ د ایـران وزیـر اعظم حاجي مرزا آغاسي ته ولیکل چې مانه فوراً معافي وغواړه او څۀ وخت چې وزیر اعظم انکار وکړو نو هغۀ سمدستي هغۀ سره تعلقات قطع کړل. او لارډ پامرستن ته ئ په 25جون 1838ء د مشهد نه دا شان خط ولیکلو.

" After having exhausted all the means I could devise to induce the Persian Govt; to grant the reparation and satisfaction for the violence offered to the messenger and finding that I could obtain nothing I felt compelled not only in consequence of the evident determination of the Persian Govt; not to grant that I had demanded, but also because of its perseverance in the course of proceeding towards me in camp which I felt was lowering the character of the mission in the estimation both of Persian and Afghans, to quit the court, and I am now on my way to the Turkish frontier where I shall hope to receive further instructions from your Lordship. What course the Persian Govt; will now pursue I know not; some public act of reparation which will prove to the people of Persia and Central Asia that we

are not with impunity to be insulted, is in my opinion indispensably necessary- I will not say to restore us to our former position but to enable us to retain one of any credit or respectability. Both the Persians and the Afghans in the Shah's camp saw with amazement the Persian Govt, treating a British Mission as a prescribed body, and punishing persons who ventured to hold even a casual communication with it, while some of the members of the Russian mission took to task and threatened to get punished for that offence persons who occasionally visited at my tent, taking some precautions to prevent their being discovered."

ترجمه : "هر کله چې ما سره هغه ټولې ذریعې کومې چې زما په دماغ کښې راتلې شوې د ایراني حکومت نه د هغې تشدد د معافۍ او د تلافۍ د حاصلولو دپاره کوم چې هغوي زما قاصد سره کړے وۀ ختم شوې او ماته معلومه شوه چې ایراني حکومت د هیڅ قسم تلافۍ ته تیار نۀ دے نو زۀ په دې مجبور شوم چې زۀ د ایران دربار نه لاړ شم. نۀ صرف په دې وجه حکومت ایران د دې خبرې قصد کړے دے چې هغوي زما دا مطالبه ونۀ مني بلکې په دې وجه هم چې په کومه طریقه هغوي په کیمپ کښې ما سره مسلسل سلوک کړے وۀ هغې زما په خیال کښې زمونږ د سفارت ټول درناوے هم د ایرانیانو او هم د پښتنو په نظر کښې تباه کړو. اوس زۀ د ترکو سرحد طرف ته روان یم او په هغه ځاے کښې به زۀ ستا د مزید هدایاتو منتظر یم.

زۀ نشم وئیلے چې اوس به حکومت ایران څۀ لار خوښوي مګر زما په خیال کښې د تلافۍ یو دا شان ښکاره کار به لا بُدي او ضروري وي چې کوم د ایران او د وسط ایشیا خلقو ته دا ثابته کړي چې مونږ سره د بې عزتۍ کار بې د سزا خوړلو نه شوک کولے نشي. زۀ دا نۀ وایم چې د تلافۍ دا کار به زمونږ وړومبے حیثیت د خلقو په زړۀ کښې کښینوي ولې دومره به وشي چې زمونږ څۀ نا څۀ اعتبار او عزت به په خلقو کښې پاتې شي. کوم ایرانیان او پښتانۀ چې د شاه په کیمپ کښې دغه وخت موجود وو هغوي په دې حیران پاتې شو چې د ایران حکومت خو انګریزي سفارت سره د یو ممنوع ټولې په شان سلوک کوي او هر څوک چې هغوي سره اتفاقاً هم څۀ آمدورفت وساتي نو هغۀ له سزا ورکوي. حالانکې د روسي سفارت افسرانو به هغه ټولو کسانو ته د سزا ورکولو دهمکي ورکوله کوم به چې کله نا کله زما خیمې ته د ملاقات دپاره راغلل او خپل راتلل به ئې د خلقو نه پټ ساتل."

د میکنیل په داسې دیده دلیرۍ د حکومت ایران نه د معافۍ غوښتلو دا مطالبه څومره ناجائزه وه ولې د پښتو متل دے چې په تا مې وس نۀ رسي مړ به دې پلار کړم. د ایران بادشاه ته یو طرف ته روسي ډانګ وۀ او بل طرف ته انګریزي پړانګ. یو خوا هغه د روس د لاسه مجبور وۀ چې په هرات باندې حمله وکړي او هغه فتح کړي بل خوا د فیرنګیانو دا منشا وه چې هغه د هرات نه واپس شي. د زړو عهدنامو مطابق انګریزانو ته دا حق نۀ وۀ چې هغوي

ایران د هرات د حملې نه منع کړي ولې هرکله چې د یو یورپي طاقت خپل غرض او مطلب مدنظر وي نو هغه عهدنامې او اقرار نامې څهٔ کوي. خاص طور هغه وخت چې هغه زورور او بل کمزورے وي. روس او فیرنګیان پخپلو کښې خو د یو بل نه وېریدل او ښکاره په ښکاره ئ د یو بل خلاف جنګ کول نهٔ غوښتل. ولې اوبهٔ په کمزوري ورخ زر اوړي. چونکې په روس او ایران دواړو کښې ایران کمزورے وهٔ نو فیرنګیانو خپل قهر د ایران نه ایستلو. رښتیا خبره دا ده چې د هر بې اتفاقه قوم هم دغه نتیجه وي کومه چې د ایران شوه. کهٔ نه وي نو د پښتنو او د ایرانیانو د جنګ هیڅ څهٔ جائزه وجه په منځکښې نهٔ وه. بلکې د دواړو قومونو یو مذهب او یو تهذیب بلکې تر ډیره حده ژبه هم شریکه وه.

میکنیل لا د هرات نه وتے نهٔ وهٔ چې هغهٔ میجر ټاډ سره د خپلو رپورټونو لارډ آکلینډ ګورنر جنرل هندوستان ځخه واستولو. د دې رپورټونو او د برنس د مشن د ناکامیابۍ د لارډ آکلینډ په زړهٔ ډیر خراب اثر وشو. او هغه ئ دې ته مائل کړو چې د فیرنګیانو اثر دې په وسط ایشیا کښې د تورې په زور پیدا کړې شي. او چونکې په ټولو حکومتونو کښې کمزورے او وړوکے او انګریزانو ته نزدې د بارکزو حکومت وهٔ له دې کبله هغهٔ ته په کابل باندې د لام ترلو خبره د ټولو نه غوره ښکاره شوه. د دې خط د لیکلو نه یو څو ورځې پس میکنیل د هرات نه مشهد ته روان شو او لا په لاره وهٔ چې هغهٔ په ایران کښې د محمد شاه خلاف د بغاوت د پیدا کولو سازشونه شروع کړل. د محمد شاه د تخت نشین کیدو په وخت کښې د هغهٔ خلاف د هغهٔ دریو ترونو او سیف الدوله نومے د اصفهان ګورنر څهٔ معمولي شان بغاوت کړے وهٔ. او د هغوي په مرسته او امداد کښې سید محمد باقر چې د اصفهان مجتهد او په خلقو کښې هغه لوے نوم او مذهبي رسوخ او اقتدار پیدا کړے وهٔ، ودریدلے وهٔ . میکنیل ته دا علم وهٔ چې د دې مجتهد او د محمد شاه په منځکښې تعلقات په دې وجه سخت کشیده دي. پس هغهٔ دې مجتهد ته د محمد شاه په خلاف د بغاوت کولو دپاره یو خط ولیکلو. او هغهٔ ته ئ ووئیل چې کهٔ چرې تا د محمد شاه خلاف د جهاد اعلان وکړو نو انګریزان به تاله د هغهٔ برخلاف امداد درکړي. ځکه چې فیرنګیان د ایران د خلقو نه خو خوشحاله دي ولې د محمد شاه نه صرف د هغهٔ د ناقابلیت په وجه خفه دي.

سید محمد باقر نهٔ دا شان ساده وهٔ اونهٔ دومره خودغرضه وهٔ چې د میکنیل په اصلي غرض باندې نهٔ پوهیدو . هغهٔ د میکنیل خط بجنسه شاه ایران ته واستولو. او په جواب کښې ئ دې انګریزي سفیر ته ولیکل چې " ایرانیان د خپل بادشاه د حکم په منلو او د هغهٔ په اطاعت کولو کښې مشهور دي او تا غوندې سړي دپاره چې یو یورپي سفیر ئ دا ډیره نامناسبه ده چې په یو دا شان ملک کښې د غوبل جوړولو کوشش کوے چې په هغې کښې انګریزانو سره همیش دپاره د ډیر عزت سلوک شوے دے." دغه شان میکنیل په ایران کښې

د بغاوت د پیدا کولو په منصوبو کښې ناکامیاب شو. میکنیل لا تبریز ته نهٔ وهٔ رسیدلے چې د لارډ پامرسټن خط هغهٔ ته د هغهٔ د وړومبنو خطونو په جواب کښې راورسیدو. لارډپامرسټن هغهٔ ته لیکلي وو چې "زما د طرف نه تهٔ مجاز ئ چې د برطانیه عظمیٰ د طرف نه ښهٔ په زور او طاقت سره کارروائي وکړې." وړاندې ئ لیکلي وو چې "شاه ایران ته د اول نه دا وینا پکار ده چې هرات باندې د هغهٔ حمله کول انګریزانو سره دشمني کول دي او کومه عهد نامه چې د ایران او د برطانیه عظمیٰ په منځکښې شوې ده د هرات دا حمله حکومت برطانیه د دې عهدنامې د مضمون نه بالکل خلاف ګڼي."

دې خط سره سم یوه انګریزي سمندري بیړه چې حکومت هند را استولې وه ایراني اوبو ته رادننه شوه او د کرک ایراني جزیرو باندې ئ قبضه وکړه. هر کله چې میکنیل د دې کار روایی نه خبر شو نو هغهٔ یو الټي میټم د کرنل سټډارټ په لاس شاه ایران ته ولیږلو. چې په هغې کښې هغهٔ د محمد شاه نه مطالبه کړې وه چې کهٔ چرې ایران د هرات محاصره سمدستي نهٔ پریږدي نو علاوه د کرک د اخستلو نه به انګریزان څهٔ نوره کار روائي هم ستا په خلاف وکړي. فیریر وائي چې "انګلینډ ته دا ښه معلومه وه چې د هرات په معامله کښې اصلي باعث څوک وو مګر هغوي هغې حکومت ته بغیر د دې نه چې هغوي د خپل ځان دپاره نور مشکلات پیدا کړي وړے هیڅ نشو وئیلے ..... چونکې روسي حکومت سره هغوي نیغه دشمني نشوه جوړولے په دې وجه هغوي خپله توله توجه ایران ته واړوله."

هم په دې ورځو کښې د کپتان ویکویچ سفارت د قندهار او د کابل نه په کامیابۍ سره واپس راورسیدو. میکنیل د هغې ټولو عهدنامو چې کومې دوئ روسي افسر په ذریعه د ایران او د کابل او قندهار په منځکښې شوې وې اطلاع خپل حکومت ته ورکړه او هغوي ته ئ دا شان ولیکل:

" Before my messenger (Col. Stoddart, bearer of the ultimatum) could reach the Shah of Persia, a treat had been concluded between the Prince of Qandahar and his Persian Majesty and the Russian Minister had formally guaranteed the fulfilment of the engagements contracted by the two parties. A treaty of the same nature was in course of completion with Kabul also and Capt, Vikovitch after having been received by the Shah in his camp, had set out a second time for that city and Qandahar, furnished with immense sums of money for the purpose of terminating arrangements so auspiciously commenced to establish Persian domination and Russian supremacy in all the Afghan states. The entire country from the Russian Frontier on Araxes to the banks of the Indus had been secretly tampered with and raised by Moscovite Agents, some openly accredited, others without any ostensible public duty; all engaged in forming a line of influence which not only counteracted the views and interests of Great Britain but distrubed and threatened her Empire in the East."

ترجمه :" قبل د دې نه چې زما قاصد (کرنل ستېدارټ چې چا التي ميتهم ورلو) شاه ايران ته رسيدلے وے د قندهار د شهزاده او د شاه ايران تر منځ يوه عهدنامه شوې وه. او روسي سفير د هغوي تر منځه د دې عهدنامې د شرطونو د تعميل دپاره باقاعده ضامن شوے وۀ. هم د دې قسم يوه بله عهدنامه کابل سره هم زير بحث وه. او کپتان ويکوويچ شاه ايران سره په کيمپ کښې د ملاقات کولو نه پس دوباره په طرف د قندهار او کابل روان شو. او ډيرې بې خرته روپۍ ئې ځان سره په دې غرض يوړې چې کوم کار دا شان په ښه طريقه روان شوے دے چې هغه سر ته ورسي. او ايراني رسوخ او روسي اقتدار د پښتنو په ټولو حکومتونو کښې ښۀ مضبوط شي. د روسي سرحد نه چې واخلې نو عين تر دريائے سندھ ټول ملک د ماسکو ايجنټانو راوچت کړے دے. او پکښې ئې دخل ورکول شروع کړي دي. دا ايجنټان بعضې خو باقاعده مقرر شوي دي او بعضې د څۀ خاص کار نۀ دي مګر ټول په دې يو کار کښې لګيا دي. چې د خپل حکومت د اثر يو دا شان سلسله جوړه کړي چې هغه نۀ صرف د حکومت برطانيه د خيالاتو او مفادو نه خلاف وي بلکې په مشرق کښې د هغوي ټول حکومت په خطره او فساد کښې واچوي."

د دې ټول خط و کتابت په دوران کښې د پښتنو او د ايرانيانو جنګ بدستور ګرم وۀ او د محاصرې اتۀ مياشتې پوره شوې وے ولې ايراني فوځ لا تر اوسه هيڅ څۀ نامتو ګټه نۀ وه کړې. هرکله چې شاه ايران ته دا معلومه شوه چې انګريزان د هرات په معامله کښې ماله التي ميتهم راکونکي دي نو هغۀ دا خيال وکړو چې کۀ چرې د التي ميتهم د را رسيدو نه اول اول هرات سلامې شو نو بيا خو به انګريزانو ته په دې کښې د دخل ورکولو څۀ ګنجائش پاتې نشي. مګر کۀ چرې التي ميتهم د را رسيدو نه پس د هرات محاصره زۀ بدستور جاري وساتم نو بيا ډيره اغلبه ده چې هغوي په ما باندې د جنګ اعلان وکړي. پس هغۀ د يو اخري حملې کولو دپاره د خپلو ټولو جرنيلانو او افسرانو يو جنګي جرګه وکړه او د يوې زبردستې حملې دپاره ئې ټول تجويزونه تيار کړل. چنانچه دا حمله په ډير ترتيب او انتظام سره په څليريشتم جولائي 1838ء شروع شوه. دا جنګ تر دې حده خونريز او لوے وۀ چې د پښتنو ښځې او د لسو کالو نه بره هلکان هم په دې جنګ کښې شامل شول. او څۀ وخت چې ايرانيانو د يو خوفناک ګوله بارۍ نه پس د ښار فصيل په ماتولو کښې کامياب شول نو دا ښځې او هلکان هم فوځ سره د ښار په حفاظت کښې وجنګيدل. پښتنو هم د دې مقابلې دپاره جرګه کړې وه او دا فيصله ئې کړې وه چې کۀ چرې ايران د ښار په اخستو کښې کامياب شو نو اول به مونږ خپلې ټولې ښځې او بچي قتل کړو او بيا به ځانونه په دشمن او يو تر بله ووژنو. خو د ايرانيانو اطاعت به قبول نۀ کړو. سره د دې چې ايرانيان په شمار کښې ډير زيات وو او هغوي سره توپې او يورپې افسران وو او سره د دې چې د حملې ټول تجويزونه په يورپي اصولو باندې د

ډېر سوچ او غور نه پس جوړ شوي وو ولې د پښتنو بهادرۍ، جانثارۍ او د اعلیٰ درجې استقلال چې د هغې مثال د ایشیائي جنګونو په تاریخ کښې موندل مشکل دي. د هغوي هره حمله ئې وتمبوله دا د محمد شاه اخري غشے وُه چې هغهٔ په پښتنو وویشتو. او چې څهٔ وخت هغه خطا لاړو نو هغه سخت مایوسه شو او اخر کار په اتم ستمبر 1838ء هغهٔ د هرات محاصره وچته کړه او واپس خپل صدر مقام ته روان شو.

فیریر وائي چې "کومه تباهي او بربادي چې د ایران فوځونو د هرات په زرخیزه او اباده علاقه کښې د دې محاصرې په زمانه کښې راوسته دا ناممکنه ده چې د هغې صحیح اندازه ولګیدې شي. د دې ښکلي شین او سرسبز وطن نه هغوي بالکل یو وران بیابان جوړ کړو. او د ټول ښار نه ئې د هغې رونق اوشان ورک کړو. داسې یو کور نهٔ وهٔ چې د هغې دیوالونه او چتونه لوټې لوټې شوي نهٔ وو. او مکانونه، سرایونه او بازارونه خو بالکل ویجاړ شوي وو."

هر کله چې ایرانیانو دا محاصره ختمه کړه نو د هرات په علاقه کښې تر ډېرې مودې د خوراک څښاک د سامان د کمي په وجه قات وهٔ. ایرانیانو د هرات نه چارچاپیره ټول کلي اویا اویا او څلور نیمې څلور نیمې شلې میله پورې د خپل فوځ د خرڅ خوراک دپاره تالا کړي وو. دا خلق هم د ایرانیانو د تلو نه پس د هرات ښار ته د خوراک په تلاش کښې راغلل. په ښار کښې وړومبے نه د خوراک سامان ختم شوے وهٔ نو چې دا خلق هم د ښار خلقو سره شامل شول نو بیا هغوي باندې د لوږې مصیبتونه لس چنده نور زیات شو. یار محمد خان په دې تنګ وخت کښې د خپل ملک لوي لوي خانانو او سوداګرانو ته قاصدان واستول او د خدائے او د ملک په نوم ئې هغوي ته د خپل تباه شوي قام د امداد دپاره د غلې سوال وکړو. د غلې په درآمد باندې هغهٔ د هر قسمه محصول معاف کړو. چنانچه د ترکستان، قندهار او د ایماک سوداګرو ډېره غله هرات ته راوړه. مګر چونکې خلقو سره روپۍ نهٔ وې نو ډېرو خلقو خپل ځانونه خپل ځامن او لوڼه د غلې اخستلو دپاره په ترکمانانو باندې خرڅ کړل.

# اول جلد ختم شو

## ضمیمه د اول جلد

# د پښتنو د اصل نسل متعلق یوه بله نظریه

د پښتنو د اصل نسل متعلق یوه بله نظریه د افغانستان مشهور تاریخ نویس احمد علي کهزاد په خپل تاریخ "تاریخ افغانستان" جلد اول کښې دا ښکاره کړې ده چې پښتانهٔ درحقیقت د "آریا" نسل یوه قبیله ده. چې قریباً شپږ اووهٔ زره کاله پخوا د مسیح د پیدائش نه وړومبے اول خو د خپل اصلي وطن "وسط ایشیا" نه باختر ته چې د دریائے آمو او سردریاب په منځکښې یوه علاقه ده، راکوز شول. او د زرګونو کلونو د استوګنې نه پس هغوي بیا د هغه علاقې نه نولس سوه یا دوه زره کاله قبل مسیح کښې د موجوده افغانستان، فارس او د درهٔ سندهـ لوري ته په ټولو ټولو کښې په ډیره موده کښې ورو ورو راخوریدل. دې ټولې علاقې ته آریانه (رګ وید) یا ایریانه ویجه (اوستا) وئیل.

د اثار قدیمه ټول عالمان د وروستني یو نیم سل کاله تحقیقات نه پس په دې خبره متفق شوي دي چې هم د دې باختري آریا نسل بل شاخ د باختر قبیلې نه د قبلې په طرف اول اول په قطبي یورپ یعنې سکنډ نیویا (سویډن، ناروے) فنلینډ، جرمني د ډینیوب سیند په دره کښې د بحیره اسود په قطبي علاقه، په جنوبي روس او سائبریا کښې اباد شوي دي. او بیا ورو ورو په ټول مغربي یورپ کښې خوارهٔ شوي دي او د نن ورځې د یورپ د قومونو په اصطلاح کښې د "انډو یورپین" په نوم بللے شي.

د یورپ مدققین او محققین وائي چې په دې کښې هیڅ شک نشته چې آریا نسل عموماً د هندوستان نه چې واخلې نو عین تر مغربي یورپ پورې په دې ټولو وطنونو کښې (ماسوائے د مشرق وسطیٰ او عربستان نه چې په هغه علاقه کښې د سامي نسل خلق وسیږي) خوارهٔ شوي دي. او اګر کهٔ د دې نسل بیل بیل قومونه اوس بیلې بیلې ژبې وائي ولې په حقیقت کښې کهٔ چرې د دې مختلفو ژبو په ژوروالي سره مطالعه وکړې شي نو سړے په دې نتیجه رسیدے شي چې دا ټولې ژبې یو تر بله مشابهت لري. دا مدققین رائ لري چې دا ټولې مختلفې ژبې چې په انډو یورپین قومونو کښې وئیلے شي د سانسکریت یا د زند ژبې نه راوتي دي. د دې نه دا ثابتیږي چې هم دغه دوه ژبې دي چې د آریا نسل په خپل وطن یعنې باختر کښې وئیلے شوې. سانسکریت هغه ژبه ده چې پکښې د هندوانو مقدس کتابونه "وید" لیکلي شوي دي او "زند" هغه ژبه ده چې پکښې د پارسیانو مقدس کتاب "اوستا" لیکلے شوے دے. د موجوده فارس نوم چې ایران ایښودے شوے دے د هغې وجه هم دا ده چې په دې

کښې آريا قوم اباد وۀ او ''پارسوا'' چې بيا ترينه پارس جوړ شوے دے هم د آريا نسل يوه مشهوره قبيله وه چې د ايران په حدودو کښې اباده شوې ده.

د هندوستان قديمي مذهبي کتابونه لکه رګ ويد دا وائي چې د آريا نسل مختلف ټولي د هندوکش د قطبي علاقو نه وړومبے د سهيل لمنو ته او بيا د کابل، ګومل اود سوات د درو په لاره د پنجاب علاقې ته راکوز شوي دي. احمد علي کهزاد زيات تر خپل استدلال هم د رګ ويد د شعرونو نه کړے دے او دا خبره ئ ثابته کړې ده چې د موجوده افغانستان د ازاد قبائلو علاقه صوبه سرحد وغيره، ايران او هندوستان ټوله ابادي د آريا نسل نه ده. چې د باختر نه راخوارۀ شوي دي. د هغۀ په رائ کښې رګ ويد يو زوړ او قديمي کتاب دے چې د ټولو نه وړومبے ئ د آريا قوم د تهذيب تمدن او قديمي رواجونو او مذهبي عقائدو ذکر په شعرونو کښې کړے دے. ''اوستا'' د پارسيانو د کتاب نه هم هغۀ ډير دليلونه په دې باره کښې اخستي دي.

د لفظ آريا لغوي ترجمه ده عبادت کونکے، عقيده راوړونکے او قرباني ورکونکے ليکن اصطلاحي معنیٰ ئ ده نجيب، شريف، بادار، آقا، مالک او اختيارمند. په مختلفو ځايونو کښې د کثرت استعمال په سبب دا لفظ د ځوانمردی ، مهمان نوازی، نيک خويی، دلاوری، وطن دوستی او جنګجويی دپاره هم استعمال شويدے.

وئيلے شي چې په کومه زمانه کښې آريا د سلسلۀ هندوکش دواړه طرف ته يعنې قطب او سهيل ته ورسيدل نو د هغوي مشرانو په دې غرض چې هغوي د ټولو پردو قومونو نه ځان په تميز بيل وساتي، صلاح وکړه چې يو داسې نوم خپلو ټولو قبيلو له خوښ کړو چې بيا پکښې د تفرقې څۀ ګنجائش پاتې نۀ شي او ټول باهم متحد اومتفق وي.

هر کله چې د دې نسل يو شاخ د هند په لوري هجرت وکړو نو قدرتي طور هغوي ځان سره آريا نوم راوړو او په دې نوي ملک ئ د ''آرياورته'' يعنې د آريا د استوګنې ځاے نوم کښيښودو. احمد علي کهزاد وائي چې مسکن ته چې په ابتدا کښې دا لفظ ''آريا ورشه'' وۀ څنګه چې هم هغه زمانه کښې ''بهاراته ورشه'' د ''بهاراته'' قبيلې د استوګنې ځاے ته به ئ وئيل. ''ورشه'' او ''ورشو'' يو څيز دے. اوس هم په پښتنو کښې ''ورشو'' د ځاروو د څرولو ځاے ته وائي. چونکې د خپل ابتدائي تمدن په زمانه کښې د آريا قوم ګزران په مالداری وۀ له دې کبله په هر ځاے کښې به چې د هغوي د مال داری د څرولو دپاره ورشو ښه وه نو هم هلته به ئ ډيرې واچولې او هم هغه مقام ته به ئ د خپلې ''استوګنې ځاے'' وئيلو.

دا مسلمه خبره ده چې هر کله د آريا قوم يوه قبيله چې نوم ئ ''بهاراته'' وۀ سره د خپلې مالدارۍ ''سندهو'' طرف ته (چې د سندهـ او پنجاب علاقه ده) راکوزه شوه نو د دې علاقې نوم ئ ''بهاراته ورشه'' کښيښود. دغه شان ''اوستا'' خپل د زوړ آريا نسل د استوګنې

ځاے ته چې د باختر په علاقه کښې وۀ "آريانه ويجه" وائي. احمد علي کهزاد وائي چې لفظ "ويجه" اوس هم د ارغنداب د پښتنو په ژبه کښې د "ورشو"، په معنیٰ استعمالیږي.

په رګ وید کښې دا ذکر شوے دے چې "ویدي قبائل" وړومبے خو هندوکش د درو نه سهیل ته د کوه دامن علاقو ته راکوز شول. او بیا د دې علاقو نه ئ هغه قدرتي لارې راواخستې په کومو باندې چې "آب خانې" تللې وے. او څۀ ټولي خو د نمرخاتۀ ملکونو او څۀ د سهیل قبلې ملکونو کښې خوارۀ شول. وائي چې یو ټولے د "کوبها" د آب خانې یعنې د کابل او د هغې د معاونینو په لاره راروان شو او د "بخر تګاؤ"، سروبي، لغمان په لاره د کونړ درې ته راووتل. او د هغه ځاے نه د "سواستو" درې یعنې د "سوات" آب خانې طرف ته راخوارۀ شول. بله دسته د کوه دامن او رود خانۀ کوبها نه سهیل طرف ته د سپین غر په لمنو کښې اباد شول. او بیا د هغه ځایونو نه د "کرومو" ښکلو درو (یعنې د درۀ کرم) او د "ګوماتي" (یعنې د ګومل درو) او نورو هغه مقامونو کښې خوارۀ شول چې د سفید کوه او د کوه سلیمان د آب خانو اوبۀ را اخلي. دغه شان د آریا قوم بله دسته د "سراسوتي" (د احمد علي کهزاد په رائ کښې) یعني د ارغنداب سرسبز علاقه کښې اباد شول.

احمد علي کهزاد د دې نظریې په تائید کښې چې د موجوده افغانستان، صوبه سرحد، او د قبائلي علاقې ابادی د قدیم آریا نسل خلق دي. د ډیرو علاقو نومونه په افغانستان کښې پیش کوي چې په زړه زمانه کښې د هغوي په نومونو کښې لفظ آریا په مختلف شکلونو کښې موجود دے. د نمونې په طور هغه د لاندینو علاقو نومونه بیانوي :

(۱) هرویو : Haroyo دا نوم په اوستا کښې د هري رود سرسبز علاقې دپاره اخستې شوے دے. د زمانې په تیریدو سره لفظ آریا د هري ، اري، آرتا، یا هرات په شکل استعمال شویدے.

(۲) هراوي تي : دغه نوم په اوستا کښې د ارغنداب علاقې دپاره استعمال شوے دے. په دې نوم کښې د هرا ټکے د آریا نه راوتے دے.

(۳) آریاکا : Ariaka دا د مارجیان په علاقه کښې د یو ښار نوم وۀ چې د هغې وسیدونکو ته به ئ آریاکي وئیل په دې نوم کښې د آریا ټکے په خپل اصلي شکل کښې موجود دے.

(۴) آریاسپ : Ariaspe دا د انجیان په علاقه کښې د یو ښار نوم وۀ چې د هیرمند سیند په غاړه اباد وۀ په دې نوم کښې هم آریا ټکے په خپل اصلي حالت کښې موجود دے.

(۵) آرستوفیل : Aristophyles د ولایت کابل قبلې ته یو قوم اباد وۀ چې په دې نوم مشهور وۀ په دې نوم کښې د اري ټکے د آریا نه وتلے ښکاري.

دې کښې هم شک نشته چې زړو یوناني مؤرخینو لکه ایراتوس تنیز Erathosthenes د مسیح د پیدائش نه ډیر وړومبے تیر شوے دے د موجوده افغانستان ټولې علاقې ته آریانه لفظ استعمال کړے دے. علاوه د دۀ نه براسترابو، بطلیموس، پلیني او

اپالوډورس ارتمیس هم دې ملک ته د آریانه ملک وئیلے دے.

هـم دغه شان په رګ وید کښې د "کوبها" (کابل) سیند د "سویتي" (سوات) سیند د "کـرومو" (کرم سیند) د "ګوماتي" (ګومل سیند) او د سندهو (سندهـ) دریا ذکر شوے دے. د "کوبها" دره او سیند په قدیم ویدي آریا قوم کښې ډیر مشهور او هردلعزیز وهٔ ځکه چې څهٔ وخت هغوي د بـاختـر نه وړومبے وړومبے راووتل او د هندوکش په درو کښې ښکته راکوز شـول نو تـر ډیـرې مـودې د کوبها په زرخیز او شاداب دره کښې ډیره وو. زاړهٔ آریا چونکې اکثر مـال داره خـلق وو او ګـزران ئې د غواګ، ګډو، بیزو او په نوره مال دارۍ وهٔ له دې کبله قـدرتـي طـور به هغوي په سیندونو او د سیندونو په درو کښې ډیره کیدل او د هغې صفتونه به ئې کـول. چـنـانـچـه د "سـندهو" (یعني د سندهـ) په تعریف کښې چې په "آریا ورته" کښې د ټولو نه لوے سیند وهٔ رګ وید په لسم منډل بهجن نمبر ۷۵ کښې دا شان تعریف کړے دے:

"اے سـنـدهـو تـهٔ اول خـو خـپـلـو سـر تیزو اوبو سره د تریشتاما Trichtama راسا Rasa سویتي Sveti او کـوبـهـا شـامـل وے او بیـا هم په دې شان ګوماتي (ګومل) او کرومو (کرم) راکاړې."

احـمـد عـلي کهزاد د ډیرو معتبرو او تاریخي سندونو نه په آریانه کښې د آریا نسل د وسیـدونـکـو قبیـلو ذکر کړے دے. منجمله د هغوي نه د یوې طاقتورې او مضبوطې قبیلې نوم "بهـاراتـه" وهٔ. چې د بـاختـر نـه سـره د آریـا د نـورو قبیلو د هندوکش د سهیل په غرونو ته د راکـوزیدو نه پس څهٔ د ارغنداب د درې او څهٔ د درهٔ کوبها، کرومو او ګوماتي په لاره پنجاب کښـې خـوره شوې ده. "بهاراته" قبیله سره د خپلو ټولو خیلونو وړومبے خو تر ډیرې مودې د هـنـدوکش د سهیل په لمنو او په سپین غر کښې وسیدله. او بیا بتدریج سره د "سپته سندهو" (پـنـجاب) په طرف راکوز شول. دې قبیلې د آریا نسل نورو قبیلو سره دوه لوے لوے جنګونه پـه دې زمانه کښې کړي دي. یو جنګ خو هغوي د آریانا د نمرخاتهٔ سرحد په خواوشا کښې کـړے دے چې "د لسو ملکونو جنګ" په نوم مشهور دے. دویم جنګ ئې د ارغنداب د درې په نواحي کښې کړے دے او د "جنګ د یواداسا بادشاه" په نوم باندې مشهور دے.

د بهـاراته په شان د آریا نسل یوه بله قبیله هم وه چې نوم ئې "پنجه جانا" وهٔ. یعني پنج (پـنـځهٔ) جـانـا (قبیـلې). دا لویه قبیله د پنځو قبیلو نه جوړه شوې وه. او په رګ وید کښې ئې ذکر شته. د دې پنځو قبیلو نومونه دا دي:

انو Anno دریوهو Druhus یادو Yado توروا سا Turvasas پورو Puruo

پـه دې پـنـځـو واړو قبیـلـو کـښـې د پـورو قبیله ډیره د اثر خاونده او منظم وه. پروفیسر شانه راداس چې پـه کـلـکـتـه یـونـیـورسـټـي کـښـې د قدیم تاریخ هند پروفیسر دے وائي چې د پورو مسکن د درهٔ سندهـ بره حصه او د ګندهارا دره یعني د کابل خوا او شا علاقه وه.

د لسو ملکونو جنګ چې ورته بره اشاره شوې ده زمونږ د موجوده مضمون دپاره دومره اهمیت لري چې په هغې کښې د ټولو قبیلو ذکر شوے دے چې چا په دې جنګونو کښې حصه اخستې وه. وائې چې د بهاراته قبیلې بادشاه سوراس د دیواداسا بادشاه زوے وۀ. د دۀ یو پیر وۀ چې د هغۀ نوم ویسوامیترا چې په اصل کښې هغه هم د بهاراته قبیلې د یو علم دوست خونے کوزیکا سړے وۀ. دې پیر (رشي) د خپل روحاني طاقت او بزرګی په زور د سوراس ډیر لوے امداد د درۀ ستردو یعنې ستلج او ویپاش Vipashaیعنې بیاس په فتح کولو کښې کړے وۀ. بادشاه یو ورځ د ریشي په څۀ وجه معزول کړو او د هغۀ په ځاے ئې یو بل سړے چې د هغۀ نوم واسیستاس Vasistasوۀ مقرر کړو. نتیجه دا شوه چې د دواړو پیرانو (ریشي) د هغوي په مریدانو او د هغوي په خاندانونو او خیلونو کښې سخت مخالفت پیدا شو. چونکې ویسوامیترا د ژبې تیز په عقل پوخ او په قام کښې د اثر خاوند وۀ په دې سبب هغۀ سمدستي په سوراس باندې د حملې کولو تیاری راواخستې او د دې غرض دپاره سوراس بادشاه او ویسوامیترا دواړو د بهاراته د پنجه جانا او نورې قبیلې لکه پکت، (پکتویس پارت یا پښتون) الینا (د نورستان خلق یا د زاړۀ کافرستان خلق) بهالانا ( د درۀ بولان قبیلې) شیوا ( د درۀ سندهـ خلق) هم رایوځاے کړې او د بهاراته یوه لویه جنبه ئې جوړه کړه. او په سوراس ئې حمله وکړه ولې سوراس په دې جنګ کښې فتح حاصله کړه او د انو او دریوهو قبیلې ملکان پکښې قتل شول.

هر کله چې د ویسوامیترا جنبې شکست وخوړو نو د آریا دا لس قبیلې چې نومونه ئې لاندې درج دي په خپل وطن آریانه یعنې افغانستان کښې پاتې شول او بیا ئې د هند په لوري د خوریدلو تکل ونۀ کړو. (۱) الینا Alinaنورستاني یا د زاړۀ کافرستان وسیدونکي (۲) پکت Pakthasپکتویس، پارت، پښتون، پښتانۀ (۳) بهالانا Bahalanasد درۀ بولان وسیدونکي (۴) شیوا Chivasد درۀ انډس یا د شیوکي یعنې کابل وسیدونکي (۵) ویشانن Vishanans(۶) انو Anu(۷) دریوهو Druhyh(۸) توروواشا Turvasa(۹) یادو Yado(۱۰) پورو Prurusد بره انډس او د ګندهارا د خواؤ شا وسیدونکي

د احمد علي کهزاد دا نظریه ده چې د پکت قبیله نمبر ۲ درحقیقت د پښتنو قبیله ده او (ک) صرف د زمانې په تیریدو سره (ښ) شوے دے. دا قبیله هم د بهاراته قبیلې په شان په باختر کښې د نورو آریا قبیلو سره وسیدله. او په رګ وید کښې ئې ځاے په ځاے نوم اخستے شوے دے. د مدققینو دا رائې ده چې آریا د باختر نه د نولس سوه او دوه زره قبل مسیح خواؤشا راوتي دي. د دې وړومبني هجرت په زمانه کښې د پکت قبیله په دوؤ حصو کښې تقسیم شوې وه. یوه حصه د پنجه جانا چې د هغې لس خیلونه وو د هندوکش سهیل طرف ته راکوزه شوه. او د آریانه په سهیل نمرخاتۀ علاقه کښې اباده شوه او په هغه ځاے باندې ئې د

پکت د وسیدو ځاے نوم کښیښنود. د پکت قبیلې څۀ حصې تر ډیرې مودې لکه د آریا نسل د نورو ډیرو قبیلو هڅو هجرت ونکړو او په باختر کښې پاتې شو. تر دې چې د دریمې صدی قبل مسیح په وسط کښې د دې قبیلې یو سردار ارساس پارتي سره د یوې لویې ډلې د قبلې په طرف عین د بحیره خضر تر ساحله پورې هجرت وکړو او هلته ئ د پارتیا په نوم یو ملک اباد کړو. دا د آریانه قبیلې آخري سرحد وۀ هرودوټیس چې د زړې زمانې مشهور یوناني مؤرخ دے وائي چې د دې قبیلې څۀ کسان نور هم د قبلې په طرف لاړل. او د ارمنستان د قبلې حصو کښې دیره شول. او هلته هم هغوي د پکتیس یا پکتویس او د هغوي وطن د پکتیکا په نوم مشهور شو. هم د دې پکتیکا نه پښتیخا یا پښتونخوا یعنې د پښتون قوم د وسیدو ځاے جوړ شو. هرودوټیس وائي چې پکت قبیلې سره په ټول پکتیکا کښې کومو نورو قبیلو چې یو ځاے ژوند تیرولو هغه څلور دي (۱) گندهاري (۲) ستاگیدي (۳) اپاریتي (۴) دادیکي.

گندهاري : دا هغه قبیله ده چې د دره کابل نه تر دریائے سندھ پورې اباده او قندهار نوم هم د دې قبیلې په وجه په دې ښار ایښودے شوے دے.

ستاگیدي : دا هم د افغانستان یوه ډیره زړه قبیله ده چې هم ئ هرودوټیس او هم ئ بطلیموس ذکر کوي. هرودوټیس وائي چې دا قبیله د گندهاري قبیلې سره په گاونډ کښې وسیدله. ستا وائي صد ته او گیدي وائي غوا ته نو د دې نوم معنیٰ دا ده چې د سلو غواؤ خاوندان بعضې خلق د ستک تکي نه چې په دې نوم کښې راځي لفظ ختک راوباسي. محققین د دوئ د استوگنې ځاے د کابل او هرات په منځکښې غرونه یادوي.

اپاریتي : دا قبیله وړومبے د سپین غر په سهیل کښې وسیدله او بیا د آریانا سهیل نمرخاتۀ غرونو کښې اباده شوه او د پکتیسا قبیلې په علاقه کښې وسیدله. بیلیو وائي چې دا د اپریدو نوم دے.

دادیکي : هرودوټیس د دې قبیلې د استوگنې ځاے هم په پکتیکا کښې ښیي د دې نه معلومیږي چې دوئ هم د دې قبیلې یو شاخ وۀ. محققین وائي چې دا د تاجک قبیله وه.

په رگ وید کښې د "دیواداسا" بادشاه د ډیرو جنگونو ذکر شوے دے. منجمله د دې جنگونو هغۀ یو جنگ د پکت قبیلې د نوجوان بادشاه توروایانا سره کړے دے او د هغۀ د لاسه ئ شکست خوړلے دے. دغه شان دیواداسا بادشاه نورو آریائي قبیلو سره هم جنگونه کړي دي. لکه یو ځل هغۀ راسا بیا پني او بل ځل بریسایا او پارا واتا قبیلو سره د سراسوتي یعنې د ارغنداب په خواؤ شا کښې جنگونه وکړل. سراسوتي هم هغه سیند دے چې په اوستا کښې د هرویتي په نوم یادیږي. (وگورئ هیلبرانټ کیمبرج هسټري آف انډیا جلد اول صفحه ۸۷) په دې قبائلو کښې پني اوس هم د پښتنو مشهوره قبیله موجوده ده چې دراصل په زړه زمانه کښې د ارغنداب خواؤشا وسیدله. د پني پښتنو یو لوے کلے نن ورځ هم د هزارې

په ضلع کښې موجود دے. چې د پنیان په نوم مشهور دے. د دې پښتنو دا روایت دے چې مونږ د جنوبي افغانستان یعنې ولایت قندهار نه راغلي یو. بریسایا دا هم د پښتنو قبیله ده چې د بړیخي په نوم یادیږي او اوس هم د قندهار په علاقه کښې وسیږي فتح خان بړیخي هم د دې قبیلې خان وۀ چې د پښتنو د جنگونو په قصو کښې یادیدلو.

د دې ټول بحث خلاصه دا ده چې پښتانۀ دراصل آریا نسل دي چې د زرگونو کلونو نه د خپل اصل وطن وسط ایشیا نه وړومبے باختر ته او بیا د باختر نه د موجوده افغانستان فارس او هندوستان حدودو کښې خوارۀ شول. وړومبی نظریه چې په اصل کتاب کښې په تفصیل سره بیان شوې ده هغه دا ده چې پښتانۀ د سامي نسل نه دي او یهودیان دي.

# د پښتنو تاریخ

## دویمه برخه

## د کال 1838ء نه تر کال 1842ء

تالیف د


قاضي عطاء الله خان صاحب

د مردان

## په افغانستان باندې
## د انګریزانو ورومبې لام

مونږ په وروستني باب کښې په تفصیل سره د دې خبرې ذکر کړے دے چې د فتح خان د قتل نه پس څۀ وخت چې په افغانستان کښې د خانه جنګو بازار ګرم شو نو رنجیت سنګهـ چې شاه زمان د خپل طرف نه هغه د پنجاب ګورنر مقرر کړے وۀ د افغانستان د دې بدامنۍ نه پوره فائده وچته کړه او د پښتنو په مفتوحه ملکونو باندې پرله پسې وبلوسیدو او ټول کشمیر، اټک، ډیره غازي خان، ملتان او د سندهـ علاقه ئې خپل حکومت سره شامله کړه او هغه په دې هم صبر نۀ شو بلکې خپل فوځونه ئې په اټک راپورې ویستل او عین تر پیښوره د پښتنو د خپلې استوګنې په ملک باندې ئې هم قبضه وکړه. مونږ د دې خبرې هم ذکر کړے دے چې پښتانۀ د ممالک مفتوحه د هغوي د لاس نه په وتلو باندې دومره خفه نۀ وو لکه چې څومره هغوي د سکهانو د پښتنو په خپل ملک باندې په قبضه کولو ناراض وو.

دا بیان هم شوے دے چې هر کله سکهانو، انګریزانو او نورو قومونو د خپلو خپلو حکومتونو د خورولو او د هغوي د مستحکم کولو دپاره قسماقسم کوششونه راخستي وو او هر یو د خپل قوم او د ملک د خدمت دپاره ویني تویولې او خپل مالونه او سرونه هغوي د خپلو ورونو د عزت او ناموس په ګټلو کښې داؤ کول نو پښتانۀ لکه د درنده ګانو په خپلو کښې ارم وو او په یو بل ئې چکونه لګول او هر یو به د بل پښې خپل شریک دشمن ته رابښکلے. په دې عامه بدامنۍ کښې چې هر چا خپل غرض او مطلب په موتې کښې نیولے وۀ او قومي ژوندون او د عزیزولۍ زیست د هر یو پښتون نه هیر شوے وۀ نو په ټول ملک کښې صرف یو سړے په نظر راتلو چې د خپل قابلیت او لیاقت په سبب هغۀ د پښتنو خورو ورو ګلو دپاره د شپون کار ورکولے شو. دا سړے امیر دوست محمد خان وۀ. د هغۀ د ځوانۍ او د هلکوالي ژوندون هر څومره کۀ ډیر ښۀ نۀ وۀ ولې څۀ وخت چې هغۀ د پښتنو دا سپکه ورځ ولیدله نو هغۀ خپلې ټولې دشمنۍ، کینې، بغضونه او حسدونه پریښودل او دا قصد ئې وکړو چې د پښتنو ورک شوے نوم بیا روښانه کړم او هغوي د قامولۍ او عزیزولۍ په خوږه لاره روان کړم چې ګوندې د هغوي د پلار نیکۀ ملک بیا د هغوي لاس ته راشي او په ننګیالو او خوددارو قومونو کښې شمار شي. د هغۀ خپل نیت خو ډیر ښۀ وۀ ولې د هغۀ ورونه بدستور د هغۀ حاسدان وو او د هغۀ په لار کښې ئې ازغي کرل. مګر چونکې اوس هغه د قومیت په نشه کښې مست وۀ او د هغۀ واحد قصد د پښتنو دپاره عزت او عروج ګټل وو هغۀ د خپلو ورونو دشمنۍ شاته وغورځولې او هغوي سره ئې د صلحې صفایۍ سلوک راواخستو. هغۀ په خپلو ټولو ورونو کښې بلا شک و شبه د ډیر طاقت او قابلیت او بهادرۍ خاوند وۀ او کۀ چرې

هغهٔ د هغه زماني د عام پښتنو په لاره تلے نو هغهٔ په ډيرې اسانتيا سره د خپلو ورونو نه د هغوي ملکونه اخستې شول. مگر هغهٔ هيڅ کله په هغوي باندې پيش قدمي ونهٔ کړه. د دې روغ نيت نتيجه يو رنګ د هغهٔ دپاره ښه هم ثابته نهٔ شوه. د سلطان محمد خان په شان کمزورے او خودغرض سړے د دې هرګز لائق نهٔ وهٔ چې د پيښور غوندې اهم ځاے د هغهٔ د حکومت د لاندې وے. دا هم د سلطان محمد خان د نفس پروري او د خودغرضۍ نتيجه وه چې پيښور او د هغې نه چارچاپيره علاقه د سکهانو لاس ته ورغله. څو څو ځله دې سلطان محمد خان او د هغهٔ ورونو د سکهانو نه روپۍ وخوړې او د دوست محمد خان په خلاف ئې هغوي سره سازشونه وکړل. ولې د دې نتيجه څهٔ شوه؟ هغوي خپل ځان ته هم سخت نقصان ورسولو او دوست محمد خان ته ئې هم لويې فتنې او فسادونه رادوخاره کړل او د پښتنو ټول قام ئې د دنيا په قومونو کښې سپک او رسوا کړو.

مونږ په دې هم وړومبے بحث کړے دے چې د سکهانو د دريائے اټک نه قبلې ته په ملک باندې قبضې کولو دوست محمد خان سخت ناقلاره کړے وهٔ. د پښتنو په خپل ملک کښې هغهٔ د بل حکومت په هيڅ وجه نهٔ شو برداشت کولے. هغهٔ هم په منت او هم په جنګ د دې علاقې د ازادولو انتهائي کوشش وکړو مگر هغه ناکامياب شو. بيا هغه د دې علاقې د اخستلو دپاره د انګريزانو د دوستۍ د حاصلولو تکل وکړو او ډيرې ډيرې چيټې ئې لارډ آکلينډ ته فيرنګيانو سره د دوستۍ جوړولو دپاره وليکلې مگر فيرنګيانو د خپل غرض دپاره د دوست محمد خان د اتحاد په نسبت د سکهانو اتحاد زيات غوره ګڼلو. پس هغوي د دوست محمد خان په يوهٔ خبره هم غوږ کښينښودو او د سکهانو سره ئې پره يوه کړه. سره د دې چې برنس يو ځل د خپل سياحت په زمانه کښې او بيا دوباره په سرکاري حيثيت کښې د دوست محمد خان د قابليت، د هغهٔ د هردلعزيزۍ، د هغهٔ د حسن انتظام او انصاف تعريفونه خپل حکومت ته وکړل مگر د لارډ آکلينډ اراده نهٔ وه چې دوست محمد خان سره د دوستۍ عهدوپيمان وکړي بلکې هغهٔ به سکهان د هغهٔ برخلاف په شا باندې ټپول. اخر چې دوست محمد خان مجبور شو نو هغهٔ د روس او د ايران نه مدد وغوښتو او چونکې هغوي وزسره هم د روپو او هم د فوځونو د ورکولو عهدوپيمان وکړو له دې کبله د هغهٔ بله لار سوائ د دې نه پاتې نهٔ شوه چې هغه روس او ايران سره خپل تعلقات قائم کړي مگر دوست محمد خان نهٔ خو روس له او نهٔ ايران له په خپل ملک کښې د څهٔ قسم سياسي دخل ورکولو اختيار ورکړے وهٔ او نهٔ ئې خپله خودمختاري د هغوي د اثر او تسلط لاندې ساتلې وه. د انګريزانو هغهٔ سره دا رويه وه چې نهٔ خو ئې په خپله هغهٔ سره عهدوپيمان کولو او نهٔ ئې هغه بل چا سره عهدوپيمان کولو ته پريښودو. کهٔ چرې هغهٔ د روس سره خپل تعلقات قائمول غوښتل نو هغه هم د سکهانو برخلاف وو نه چې د انګريزانو برخلاف. په دې ورځو کښې هيڅ څهٔ خاص خطره د

روس د طرفه هندوستان ته نۀ وه پيښه او څۀ لږه ډيره ويره چې د انګريزانو په زړۀ کښې د هرات د محاصرې په وجه پرته وه هغه هم ورکه شوه ځکه چې ايراني فوځونه خپل ملک ته واپس شوي وو او په نزدو ورځو کښې نۀ خو د هغوي او نۀ د روسي فوځ د افغانستان په سرحد باندې د راتلو خطره کيدے شوه.

د دې نه علاوه روسيانو د انګريزي حکومت په وينا په دويشتمه جولايي 1838ء خپل سفير جنرل سائمونچ د تهران نه واپس راوبللو ځکه چې لارډ پامرسټن روسي وزير خارجه ته ليکلي وو چې د دې سفير په تهران کښې د موجودګی په وجه د انګريزانو ټول مشرقي مقبوضات په خطره کښې پراتۀ دي. کپتان ويکويچ هم دغه شان د افغانستان نه ايران ته او د ايران نه روس ته واپس لاړو. د دې ټولو خبرو نه دا خبره د نمر په شان ښکاره ده چې په دې زمانه کښې د فيرنګيانو هندوستاني مقبوضاتو ته د افغانستان د حکومت د طرف نه هيڅ خطره نۀ وه. مګر باوجود د دې فيرنګيانو د خپل زور او طاقت د مظاهرې دپاره او دوست محمد خان له د خپلې خودداری او خوداختياری سزا ورکولو په غرض د انصاف او د بين الاقوامي قوانينو نه خلاف ناحق د هغۀ برخلاف د لام ترلو فيصله وکړه او دا منصوبه ئ جوړه کړه چې د دوست محمد خان په ځاے يو دا شان پښتون د کابل په تخت کښينوؤ چې هغه د کشمير د راجه يا د حيدراباد د نظام په شان زمونږ په لاس کښې يوه ګوډۍ وي او هر څۀ چې مونږ ورته حکم کوؤ هغه د هغې تعميل کوي. دا خيال د فيرنګيانو په زړۀ کښې بالکل نوے نۀ وۀ بلکې د دې نه وړومبے يو ځل هغوي هم د دې غرض حاصلولو دپاره شاه شجاع له په 1833ء کښې په افغانستان باندې د حملې کولو اجازت په لدهيانه کښې ورکړے وۀ.

دا مسلمه خبره ده چې شاه شجاع په 1833ء کښې انګريزانو سره شړونکے وۀ. د يو غير جانبدار حکومت دا فرض وو چې هغه يو شړونکي له په خپل حکومت کښې د فوځونو د تيارولو او په بل ملک باندې د حملې کولو اجازت ور نۀ کړي. مګر دا حقيقت دے چې شاه شجاع په لدهيانه کښې په افغانستان باندې د حملې کولو دپاره فوځونه تيار کړل او نۀ صرف دا بلکې د افغانستان لويو لويو سردارانو سره سرکلاډويۀ خط و کتابت وکړو چې تاسو د شاه شجاع په مرسته ودريږئ او په دې طريقه دوئ د خپل غرض دپاره د افغانستان په اندروني امن کښې سخت خلل واچولو. دوست محمد خان باوجود د فيرنګيانو د دې ناجائز کارونو هغوي ته وليکل چې کۀ چرې شاه شجاع سره تاسو ملګري يئ نو چې زۀ د هغۀ مقابله نۀ کوم. د فيرنګيانو مدعا د بوسو لاندې خپلې اوبۀ بوتلل وو او دا کوشش ئ کولو چې مونږ ځان ډاګې ته را ونۀ باسو او زمونږ غرض هم حاصل شي. د فيرنګيانو په افغانستان باندې د دې لام ترلو قريباً قريباً هر يو مؤرخ سخت بد ونيلي دي او دا رائ ئ ظاهره کړې ده چې دا جنګ سخت د بې انصافۍ، د ظلم او د نامعقوليت جنګ وۀ. چې هيڅ بې هيڅه فيرنګيانو د پښتنو

سره جوړ کړو. انګریزانو د دې جنګ په جواز کښې قسم قسم الزامونه د دوست محمد خان په خلاف لګولي وو. منجمله د هغې نه یو دا وۀ چې امیر صاحب په 1836ء کښې یو خط د روس بادشاه ته لیکلے وۀ چې روس دې ما سره د دوستۍ عهدوپیمان وکړي مګر هرکله چې حکومت برطانیه د روس وزیر خارجه ته د دې تجویز متعلق تحریري شکایت ولیږلو نو هغۀ په شلم اکتوبر 1838ء د دې خبرې د صداقت نه بالکل انکار وکړو او په جواب کښې ئې فیرنګي وزیر خارجه ته ولیکل چې بیشکه د امیر صاحب یو سړے د روس بادشاه له راغلے وۀ مګر د هغۀ کار سیاسي نۀ وۀ بلکې روس سره تجارتي تعلقات قائمول وو. د امیر صاحب د دې چیټې د صحت متعلق فیریر دا شان لیکي:

......" And to those who acquainted with the extent to which false documents are made use of in Asia and the advantages which the English have themselves derived from them in subduing the Princes and Rajahs of India, one doubts the propriety of giving an opinion on the validity of the one, which the Amir is reproached with having written. This doubt is all the more admissible in as much as at the epoch at which his document was said to have been prepared; he was the warmest partisan of the English in Afghanistan and remained so after they had driven him from his country."

ترجمه: "او د دې خبرې مدنظر چې په ایشیا کښې څومره ډیر دروغ دستاویزات استعمالیږي او انګریزانو پخپله د هندوستان د راجګانو او نوابانو د مطیع کولو دپاره د دې قسم دستاویزاتو نه فائده وچته کړې ده نو دا مناسب نۀ معلومیږي چې یو قطعي رائۀ د هغې چیټې د درستۍ متعلق سړے ورکړي د کومې الزام چې په امیر باندې لګي. د دې چیټې د درستۍ متعلق دا شک نور هم په دې وجه زیاتیږي چې په کومه زمانه کښې د دې چیټې لیکل وئیلے کیږي نو په هغه زمانه کښې امیر صاحب په ټول افغانستان کښې د فیرنګیانو سخت په پره کښې وۀ او لا هم هغه شان د هغوي طرفدار وۀ چې څۀ وخت هغه د خپل ملک نه وشړلے شو."

بیا هم دغه مؤرخ لږ مخکښې وائي چې کۀ چرې مونږ دا تسلیم هم کړو چې واقعي امیر دوست محمد خان روسیانو ته د خپلې دوستۍ د ښکاره کولو په غرض دا خط لیکلے وۀ نو دا کوم جرم وۀ؟ هغه وائي:

"Supposing that Dost Muhammad did write this letter where was the crime in his doing so? Had he not a right to look for alliances against his enemies? Was there more justice therefore in the English supporting Ranjeet Singh in his spoliation of the Afghans? But who was this Ranjeet who were the Sikhs? a nation of yesterday always in subjection, without ancestors or traditions and governed for the first time by a chief of their own nation; and this chief,.this Ranjeet, who it cannot derived, possesses some very great qualities; how was he brought up? from

**whom did he hold his power? was it not from an Afghan sovereign, the Shah Zaman, who made him Governor of the Punjab? has he not thrown off his allegiance to that monarch's successors and proclaimed himself sovereign of that country? is then the origin of his power more legitimate than that of Dost Muhammad who at least has in his favour the old traditions of his family to prove that his ancestors always had in his country a power almost equal to that of the Afghan sovereign.**

**The English had probably thought of this more than once; but reason is poor argument in the eyes of those who for twenty years had been wishing to have in Kabul a sovereign who would be a docile and submissive instrument of theirs. They also sanctioned the spoliation committed upon the finest Afghan Provinces by Ranjeet. He had seized Multan in 1810 A.D. Kashmir in 1819 A.D., Peshawar in 1823 A.D., and that Ranjeet affirmed, with the entire consent of Shah Shujul Mulk, the dethroned King, who had placed himself under his protection, and was considered by him and the English as the legitimate sovereign of Afghanistan, qualified by that title to make whatever concessions of territories he pleased."**

ترجمه : ''فرض کړئ چې دوست محمد خان په واقعه کښې دا چیتی لیکلې وه نو په دې کښې هغهٔ کوم جرم وکړو؟ آیا هغهٔ ته د خپلو دشمنانو خلاف د اتحاد د جوړولو حق حاصل نهٔ وهٔ. او آیا انګریزان په دې زیاتي په حقه وو چې هغوي د رنجیت سنګهـ ملګرتیا د پښتنو په تالا کولو کښې کوله او دا رنجیت سنګهـ وهٔ څوک ؟ او دا سکهان څوک وو؟ خو یو پروني پیدا شوے قوم وهٔ چې همیش د بل رعیت وهٔ نهٔ ئ اصل نسب وهٔ او نهٔ ئ څهٔ روایات وو. او اوس وړومبے ځل د خپل قوم د یو سردار د لاندې شوي دي اګر کهٔ د دې نه انکار نشي کیدے چې په دې سردار کښې یعنې په رنجیت سنګهـ کښې بعضې ډیر ښهٔ صفات شته مګر هغه لوے شوے څهٔ رنګ دے؟ دا موجوده طاقت (اقتدار) هغهٔ له چا ورکړے وهٔ؟ آیا دا درست نهٔ ده چې دا طاقت هغهٔ له یو پښتون بادشاه یعنې شاه زمان ورکړے وهٔ. ځکه چې شاه زمان هغه د پنجاب ګورنر کړے وهٔ؟ او آیا دا درست نهٔ ده چې هغه بیا د دې بادشاه د جانشینانو اطاعت وغورځولو او خپل ځان ئ د ... ملک بادشاه کړو آیا د هغهٔ د اقتدار ابتدا د دوست محمد خان نه زیاته جائزه ده؟ د دوست محمد خان په حق کښې خو دا خبره شته چې د هغهٔ خاندان د زړو روایاتو خاوندان دي او دا ښکاره خبره ده چې د هغهٔ پلار نیکهٔ په خپل ملک کښې هم دومره اقتدار او طاقت لرلو څومره چې د پښتنو بادشاهانو لرلو.

د انګریزانو زړهٔ ته هم ډیر ځله دا خبره راغلې وه مګر چونکې د تیرو شوو شلو کلونو نه د فیرنګیانو دا خواهش وهٔ چې د کابل په تخت باندې یو دا شان بادشاه کښیني چې هغه د هغوي فرمانبردار، تابعدار او آلهٔ کار وي. نو دلیل هغوي ته څهٔ مضبوط څیز ښکاره نهٔ شو. هغوي د رنجیت سنګهـ دې کار ته هم ښهٔ ووئیل چې هغهٔ د پښتنو ښکلې ښکلې صوبې د هغوي نه راوشوکولې هغهٔ په 1810ء کښې ملتان د هغوي نه ونیولو. کشمیر ئ په 1819ء

کښېٔ ترې لاندې کړو او په پېښور باندې ئې په 1823ء کښې پېش قدمي وکړه او بيا رنجيت سنګهه دا ټولې پېش قدمۍ په هغې شاه شجاع الملک باندې تقسيم کړې چې د تخت نه کوز کړے شوے وۀ او اوس هغۀ سره شړونکے وۀ. او سره د دې فيرنګيانو او هغۀ شاه شجاع الملک د کابل د تخت جائز والي وارث ګڼلو او له دې کبله ئې هغه د دې اختيارمند ګڼلو چې هغه دا صوبې هر چا له چې د هغۀ خوښه وي ورکولے شي."

هم دغه شان کرنل ميلسن چې يو انګريزي مؤرخ دے د انګريزانو د دې بې انصافۍ متعلق دا رائې ليکي :

" They ( the British Government) proposed to depose the Ruler who out of the chaos resulting from the expulsion of the Sadozais had evoked at least a semblance of order, a form of good government and most certainly a respect for Authority; who had gained, more than any other Afghan since the death of his brother Fateh Khan, the confidence of the people and to replace him by Prince belonging to the expelled family- a Prince who had already enjoyed under- for Afghanistan's favourable circumstances, the opportunity of ruling and who had failed- who, when subsequently treated with as to the conditions of his return by the Barakzais chiefs, had acted in a manner which plainly showed that he had learned nothing and forgotten nothing; who had twice attempted to force his return, and had twice been driven back and who when at one time by the aid of foreign mercenaries Victory was in his grasp- had prefered flight to making the effort requisite to gain it.

• The Ministers of England who adopted this remarkable solution of a very slight difficulty were Liberals. Certainly to dethrone by arms a populars sovereign in order to force upon an unwilling people a Prince proved to be incompetent and known to be distastful is not a cardinal point of Liberal principles ..... In 1838 it allowed itself to be led astray by the exaggerated fears of Lord Palmerstone......... With the raising of the Seige of Hirat the main reason for British intervention in the affairs of Afghanistan disappeared."

ترجمه : "حکومت برطانيه دا تجويز وکړو چې يو دا شان حاکم د خپل حکومت نه لرې کړو چې چا په هغې بدامنۍ کښې کومه چې د سدوزو د شړونکي کيدو نه پس په ملک کښې پيدا شوې وه. څۀ نه څۀ امن پيدا کړے وۀ. د ښۀ حکومت يوه نمونه ئې جوړه کړه او يقيناً څۀ د قانون او د حکومت قدر ئې د خلقو په زړونو کښې پيدا کړے وۀ او د فتح خان د مرګ نه پس په ټولو پښتنو کښې زيات د اعتبار خاوند وۀ او دا چې د هغۀ په ځاے يو داسې شهزاده کښينوؤ چې د هغۀ خاندان د ملک نه شړلے شوے وي. حالانکې دې شهزاده له د افغانستان د حالاتو مطابق په ښۀ وخت کښې د حکومت کولو موقع په لاس ورغلې وه مګر هغه ناکامياب شوے وۀ او د هغې نه پس چې د بارکزو سردارانو هغۀ ته بيا افغانستان ته د واپس راتلو دپاره شرطونه پيش کړل نو هغۀ د خپلې رويې نه دا ثابته کړه چې په دې دومره موده کښې هغۀ هيڅ

سبق اخستې نۀ وۀ دې شهزاده دوه ځله په زور خپل وطن ته د راتلو کوشش وکړو او دواړه ځل ئ شکست وخوړو او بیا چې یو ځل هغۀ د پردو اجرتي خلقو په مدد سره راغلو او قریب وه چې فتح ئ حاصله کړې وے نو په ځاے د دې چې هغۀ خپل وس او کوشش کړے وے نو هغۀ تیښته وکړه.

د انګلستان کومو وزیرانو چې چا د دې معمولي مشکل حل په دې طریقه تجویز کړے وۀ هغوي "لبرل" یعنې ازاد خیال وو. دا یقیني خبره ده چې د لبرل پارټۍ دا اصول هرګز نۀ دي چې هغوي دې یو هر دلعزیز بادشاه په زور د تخت نه کوز کړي او د هغۀ په ځاے دې په خلقو باندې په زور یو دا شان سړے بادشاه تسلیم کړي چې هغه ناقابل او د خلقو ناخوښ وي .... مګر په کال 1838ء کښې د لارډ پامرسټن ناجائزې ویرې هغوي په غلطه لاره سم کړل ........ او بیا هر کله چې د هرات محاصره ختمه شوه نو د فیرنګیانو او د افغانستان په معاملاتو کښې د مداخلت کولو کومه لویه وجه چې وه هغه هم ورکه شوه."

هر کله چې لارډ آکلینډ په افغانستان باندې د لام ترلو فیصله وکړه نو سر الګزنډر برنس ته ئ حکم ولیږلو چې خپل سفارت د کابل نه واپس کړه چنانچه په شپږویشتم اپریل 1838ء انګریزي سفارت د کابل نه راروان شو. غلام حیدر خان د دوست محمد خان زوي ځلورو میلو پورې هغوي سره په جلب کښې راغلو.

حقیقت دا دے چې کوم انګریزي پولیټیکل افسران چې په دې ورځو کښې د ایران او وسط ایشیا په علاقو کښې د سیاسي فضا د تحقیقاتو دپاره مقرر شوي وو هغوي په خپلو رپورټونو کښې د روس د ارادو په حقله دا شان هیبتناک او مبالغه آمیز خبرې حکومت هند ته لیکلے وے چې د حکومت برطانیه او د حکومت هند دا یقین شوے وۀ چې کۀ انګریزان سمدستي په افغانستان باندې حمله ونۀ کړي او خپل اثر او طاقت پښتنو ته ښکاره نۀ کړي نو روس به هغوي په خپل لاس کښې واخلي. او په هندوستان کښې به د هغوي حکومت ته خطره پیدا شي. پښتنو سره د فیرنګیانو د وړومبني جنګ اصلي سبب د دې ناپوهه، ناتجربه کارو او د غرور نه ډک افسرانو رپورټونه وو چې د انګلستان او د هندوستان انګریزي حکومتونه ئ پښتنو سره په دې پړپنج کښې مبتلا کړل. د تکبر او د لوے والي کومه نشه چې د دې معمولي افسرانو په مغزو کښې پرته وه د هغې په وجه به هغوي یو خودمختار مسلمان بادشاه هم د خپلې رضا کارونو ته نۀ پریښودو او هر کله چې به هغوي د دې افسرانو د راۓ نه لږ اخوا دیخوا وکړل نو دوئ به سمدستي خپل حکومت ته یوه واویلا او شور ګډ کړو چې په دې کښې د فیرنګیانو رعب، اقتدار او عزت ته نقصان رسي. او بیا به د هغوي د ټول حکومت زور او طاقت د هغۀ په مرسته وردیدو او د تورې او د ټوپک په زور به ئ خپله هره خبره په هر خودمختار حکومت مجبوراً منله اوتسلیموله. هم د دې متکبرانه رویې په وجه دې

انګریزي افسرانو چې هندوستان کښې هر راجه او هر نواب ته څۀ نا څۀ بهانه جوړه کړې وه او بیا ئې هغوي د خپلو حکومتونو نه محروم کړي وو په هر چا باندې هغوي په زور باندې خپلې خبرې منلې او کۀ چا به لږ هم د خپلې خودداری او د خودمختاری جذبه ښکاره کوله نو د فیرنګیانو د حکومت ټول فوځونه به په بله ورځ د هغوي د ملک نه چاپیره شوي وو او لا به ئې هغه بادشاه بندیوان کړے وۀ او لا به ئې د ملک نه بدر کړے وۀ. په حقیقت کښې د ملک ګیری دپاره او د خپل حکومت د قائمولو دپاره دې افسرانو نۀ خو چرې د انصاف د اصولو څۀ پابندي کړې وه او نۀ د اخلاقو. هر ځاے ته به چې تلل نو هر یو به ځان د زړو خودمختارو بادشاهانو نه کم نۀ ګڼلو. او دا شان رویه او لار به ئې د هغه ملک بادشاه سره شړله چې هغه به ترینه په لږه موده کښې متنفر شو او هر کله چې به هغۀ دوئ د دې، قسم نشې ته نۀ پرېښودل نو د دروغو یوه بهانه به ئې هغۀ ته جوړه کړه او ټول ملک به ئې ترینه واخستو.

هم دغه شان کار فیرنګیانو امیر دوست محمد خان او پښتنو سره هم کول غوښتل چونکې تر دې وخته هغوي د هندوستان په یوه حصه کښې هم په خپلو تجویزونو او د زور په استعمالولو کښې ناکامیاب شوي نۀ وو او د هغوي دا خیال وۀ چې پښتنو د خپل لرې والي په وجه لا زمونږ فوځي زور او طاقت نۀ دے لیدلے د دې دپاره دوئ ته انګریزي زور ښودل ضروري دي. او بیا په هغوي د خپلې منشا یو دا شان سړے بادشاه کول پکار دي چې هغه زمونږ د لاسه او د قرض د لاندې وي مګر افسوس دے چې هغوي په سختې غلط فهمی کښې پراتۀ وو هر څومره چې دوست محمد خان دا غوښتل چې زما او د فیرنګیانو په منځکښې دې مخالفت نۀ وي او هر څومره چې هغۀ دا کوشش کولو چې فیرنګیان دې زما نه رضا وي هغه هومره د فیرنګیانو په زړۀ کښې د هغۀ قدر کمیدلو او د خپل طاقت او زور احساس زیاتیدلو مګر هم د دې کمزورو پښتنو د لاسه فیرنګیانو په دې جنګ کښې دا شان څپیړه په مخ وخوړه چې تر عمرونو ئې هیره نۀ شوه.

عجیبه خو دا ده چې فیرنګیانو نۀ خو په خپله د دوست محمد خان جائز مطالبات تسلیمول او نۀ ئې هغه یو بل چا سره تعلقاتو قائمولو ته پرېښودو فیرنګیانو امیر دوست محمد خان سره کومه ښیګړه او کوم احسان کړے وۀ چې د هغې په بدل کښې هغوي د هغۀ نه دا مطالبه کوله چې هغه دې په هیڅ شان روسیانو سره د دوستی تعلقات نۀ قائموي. ولې دا هغوي ته نۀ وه معلومه چې د اټک نه قبلې ډډې ته ټول وطن د پښتنو دے او رنجیت سنګهـ هغه بالکل ناجائز لاندې کړے دے ولې دا هغوي ته نۀ وه معلومه چې کشمیر ، ملتان، ډیره غازي خان اټک وغیره ټول د پښتنو ممالک مفتوحه وو او رنجیت سنګهـ چې د پښتنو یونوکر سړے وۀ بلاوجه هغه علاقې د پښتنو نه واخستې کۀ چرې دوست محمد خان د دې علاقو د

واپس اخستو دپاره جدوجهد کولو او ورومبے ئ د دې غرض دپاره فیرنګیانو سره د جنبې د جوړولو سعي وکړه او هر کله چې هغهٔ په دې کښې ناکامیاب شو او هغه لاچار روسیانو سره خبرې اترې وکړې نو په دې کښې د هغهٔ څهٔ ګناه وه؟ چې انګریزان دومره په طیش کښې راغلل. چې هغوي دوست محمد خان د خپل تاج و تخت نه د محروم ولو اراده وکړه. فرض کړئ چې د فیرنګیانو خپل ملک دغه شان یو بل حکومت په زور لاندې کړے وے نو دا کتل پکار دي چې آیا فیرنګیانو به د خپل حکومت ټول زور د هغې علاقې د واپس کولو دپاره نهٔ وهٔ استعمال کړے او د خپل قام خلق به ئ د پردي غلامۍ نه خلاص کړے نهٔ وو. مګر کومه قاعده او قانون چې د فیرنګي دپاره جائز وي هغه ضروري نهٔ ده چې د ایشیا او د تورې څرمنې خلقو دپاره دې هم جائز وي.

اګر کهٔ لارډ آکلینډ په خپل زړهٔ کښې د دوست محمد خان برخلاف د جنګ کولو پخه اراده کړې وه ولې دوست محمد خان تر اخره پورې په دې طمع کښې وهٔ چې شاید زما فیرنګیانو سره جوړه وشي. لا د ایران حمله په هرات باندې جاري وه چې هغهٔ په خپل اخري خط کښې لارډ آکلینډ ته تر دې حده پورې ولیکل چې لارډ صاحب دې ماله د همدردي یو دوه ټکي خو ولیکي او ما دې هغه تش د کابل امیر تسلیم کړي نو زهٔ به شاه کامران سره چې زما د هډ دشمن دے خپلې ټولې دشمنۍ هیرې کړم او د شاه ایران خلاف به زهٔ هغهٔ له د خپلو بهترینو سپاهیانو په ذریعه امداد ورکړم او د کمپنی نه به تش د خپلو فوځونو خرڅ خوراک وغوارم او مخکښې ئ دومره پورې ورته ولیکل چې في الحال به زهٔ د پیښور د واپسی نوم په خلهٔ وانهٔ خلم.

**Sir William Macnaghten**

**" Let his Lordship said he give me but two words of encouragement let him recognise me as Amir of Kabul and I will forget the mortal feud between me and the Shah Kamran, my enemy by blood, and I will rush to his support with my best troops to defend him from the Shah of Persia, on the single condition of receiving a subsidy for the troops that I shall employ in the service of the company. He even added that for the present he would not say another word about the restitution of Peshawar."**

د دې الفاظو نه زیاتي صاف او د اخلاص بیان نور څهٔ کیدے شو. سر الیګزنډر برنس هم په دې معامله کښې د دوست محمد خان په طرف وهٔ او هغهٔ یو ځل بیا حکومت هند ته په دې باره کښې ولیکل چې د روس په معامله کښې د افغانستان د ودرولو صرف یوه طریقه ده او هغه دا ده چې دوست محمد خان سره دې یو مضبوط اتحاد وشي او د هغهٔ طاقت چې کوم خانداني جګړو په وجه کمزورے شوے دے مضبوط کړے شي او دنیا ته دا وښودلے شي چې حکومت هند به هیڅوک هم د هغهٔ نقصان کولو او د هغهٔ ورکولو ته پرې نهٔ ږدي.

" There is but one way of making Afghanistan a barrier against the Russian, and that is form a strict alliance with Dost Muhammad Khan to strengthen his authority, which has been compromised by family quarrels and let every one be thoroughly convinced that the Govt; of India will never allow any attempts to be made to injure or subvert it."

مګر د برنس د دې رائ په خلاف سرولیم میکناټن ویډ او سر جان میکنیل لارډ آکلینډ ته هم دا مشوره ورکړه چې د انګریزي فوځونو په زور د شاه شجاع حکومت قائمول او د بارکزو د خاندان بیخکښي پکار ده. سر جان میکنیل خپله رائ په دې الفاظو کښې ورکړې وه :

" اګر که د پښتنو بادشاهي د احمد شاه د اولاد د لاس نه وتلې ده مګر معلومیږي چې د درانو د قبیلې اثر په ټول قوم کښې لا هم هغه شان په عروج دے. د سدوزو د اختیاراتو او د طاقت ډیره حصه بارکزو په زور اخستې ده مګر سدوزي لا بدستور په هرات کښې برسراقتدار دي او که چرې د دراني قوم په زړونو باندې د هغوي تسلط نهٔ دے پاتې شوے نو د هغوي په خیالاتو باندې خو ضرور شته.

د کابل او د قندهار خودمختار بارکزو لا تراوسه پورې ټول دراني ځان طرف ته نهٔ دي را اړولي. بلکې د هغوي د اقتدار دارومدار زیات تر په نورو قبیلو باندې دے پس د هغوي حکومت په نورو خلقو باندې په زور منل نهٔ صرف یو مشکل کار دے بلکې که چرې دا کار د فیرنګیانو د حکومت په زور وکړې شي نو د دې دپاره به دومره زور او طاقت پکار وي چې زما په رائ کښې مونږ هغه د افغانستان موجوده حاکمانو ته نشو ورکولے بلکې د هغې په وجه به د هغوي په خپل منځکښې نوې نوې بې اتفاقي او خانه جنګي پیدا شي او دا به بیا د افغانستان د ټولو اطرافو په امن کښې دومره خلل واچوي چې د سدو زو د کور په بادشاه کولو کښې به دومره د بدامنۍ خطره هیچرې نهٔ وي."

"Though the sovereignty of the Afghans has passed out of the hands of Ahmad Shah's descendants, the Durrani tribe, it appears, maintain an undoubted ascendancy in the nation. The Barkazais have usurped the greater portion of the power of Sadozais; but the later family still maintains itself in Hirat, and has a strong hold on the prejudices, if not on the affections, of a large portion of the Durranies.

That the Barakzais, holding Kabul and Qandahar in independence, would not appear to have conciliated the attachment of the Durranies, who depend in a great measure for their power on influences foreign to their tribe. To force their rule therefore on the people would not only be a difficult operation in itself, but, if sought to be effected through the mediation of the British Govt; would require a degree of support from us which we cannot, in my opinion, afford to give to the present possessors of power in Afghanistan, or rather to the Ruler of Kabul, without

**beginning new elements of discord into action productive of more evil to my own sources of imformation."**

دغه شان سر کلاړ ویډ په خپل یو خط کښې دا غلطه رائ خپل حکومت ته پیش کړه:

**" Which have been authenticated both by natives and Europeans, who have visited Kabul, lead me to believe that the authority of the Amir (Dost Muhammad) is by no means popular with his subjects, many instances in confirmation of the fact might be adduced from the reports of Mr. Masson, even when that individual has been willing to render every justice to Dost Muhammad Khan's abilities."**

ترجمه : "زما د اطلاعاتو ټولې ذریعې چې د هغې تصدیق هغه یورپین او دیسیان کوي چې څوک کابل ته په خپله تلي دي. ماته دا ثابتوي چې د امیر دوست محمد خان حکومت په خپل رعایا کښې هردلعزیز نهٔ دے او د دې خیال په تائید کښې د مسټر میسن د رپورټونو نه هم ډیر واقعات په شهادت کښې پیش کیدے شي. حالانکې مسټر میسن د دوست محمد خان د قابلیت تعریف هم ځاے په ځاے کړے دے."

د دې متضاد رائ په پیش نظر لارډ آکلینډ د ایسټ انډیا کمپنی د ډائریکټرانو په منظوری په اول اکتوبر 1838ء د دوست محمد خان برخلاف د جنګ اعلان وکړو او په اعلان کښې ئ د جنګ ټول وجوهات او اسباب په تفصیل سره شائع کړل. قبل د دې اعلان نه لارډ آکلینډ، سرولیم میکناټن سره د کرنل ویډ او کپتان آزبرن لاهور ته د رنجیت سنګه دربار ته د شاه شجاع الملک د فیرنګیانو او د سکهانو تر منځه د اتحاد د قائمولو په خاطر په سفارت ولیږل. چنانچه د شاه شجاع الملک د طرف نه انګریزانو سکهانو سره یو اتحاد ثلاثه په شپږویشتم جون 1838ء کښې قائم کړو او په لاندینی لوظنامه باندې بیا شجاع الملک، رنجیت سنګه او لارډ آکلینډ دستخطونه وکړل:

**Treaty between the British Govt; Ranjeet Singh, and Shah Shujaulmulk, concluded at Lahore on the 26th June 1838.**

**" Whereas a treaty was formerly concluded between the Maharaja Ranjeet Singh and Shah Shuja-ul-Mulk consisting of fourteen articles, exclusive of the preamble and conclusion: the peace of Afghanistan, and the whole country than the preservation of the Sovereinty of the Afghans in the Sadozai family would be worth.**

**And whereas the execution of the provisions of the said treaty was suspended for certain reasons; and whereas at this time Sir William H. Macnaughten having been deputed by the Right Honourable George Lord Aukland G.C.B Governor General of India, to the presence of the Maharaja Ranjeet Singh and vested with full powers to form a treaty in a manner consistent with the friendly engagements subsisting between the two states, the treaty aforesaid is reviewed and concluded, with certain modification and in consort with the British Govt; the provisions whereof, as contained in the following eighteen articles, will be duly and faithfully observed:**

1. Shah Shjua-ul-Mulk disclaims all title on the part of himself his heirs and successors, to all the territories lying on either bank of the river Indus that may be possessed by the Maharaja, viz, Kashmir, including its limits W.N.S together with the fort of Attock, Chach, Hazara, Kabul, Amb and its dependencies, on the left bank of the aforesaid river and on the right bank Peshawar, with the Yousafzai territory, Khattaks, Hashtnagar, Michini, Kohat, Hangu and all the places dependant on Peshawar, as far as the Khyber pass, Bannu, the Wazir territory, Done, Tank, Karak, Kala Bagh and Khushal Garh, with their dependent districts. Dera Ismail Khan and its dependencies, together with Dera Ghazi Khan, Kot Mittan, Umar Kot and their dependent territory, Sanghur, Harand Dajal, Hajipur, Rajanpur and three Kachies, as well as Munkara, with its district and the province of Multan, situated on the left bank. These countries and places are considered to be the property, and to form the estate of the Maharaja; and the Shah neither has, nor will have, any concern with them; they belong to the Maharaja and his posterity, from generation to generation.

2. The people of the country on the other side of Khyber will not be suffered to commit robberies and aggression, or any disturbance this side. If any defaulter on either state, who has embezzeled the revenue, take refuge in the territory of the other, each party engages to surrender him; and no person shall obstruct the passage of the stream which issues out of the Khyber defile, and supplies the fort of Fateh Garh with water, according to ancient usage.

3. As agreeably to the treaty established between the British Govt; and the Maharaja, no one can cross from the left to the right bank of the Sutlej, and no one shall be allowed to cross the Indus without the Maharaja's permission.

4. Regarding Shikarpur and the territory of Sindh, lying on the right bank of the Indus, the Shah will agree to abide by whatever may be settled as right and proper, in conformity with the happy relations of friendship subsisting with the Maharaja through Sir Claude Wade.

5. When the Shah shall have established his authority in Kabul and Qandahar, he will annually send the Maharaja the following articles viz. 55 high breed horses, of approved colour and pleasant paces, eleven Persian Scimitars, seven Persian Poniards, twenty five good mules, fruits of various kinds, both dry and fresh, and Sardas or musk mellons, of a sweet and delicate flavour ( to be sent throughout the year ) by way of Kabul river and Peshawar; graphes, pomegrants, apples, almonds, raisins, pistas or chestnuts, an abundant supply of each; as will as piece of satin of every colour; chughas of fur, Kimkhabs wrought with gold and silver, and Persian carpets, all together to the number of one hundred and one pieces, all these articles the Shah will continue to send to the Maharaja every year.

6. Each party shall address the other on terms of equality.

7. Merchants of Afghanistan who may be diserous of trading to Lahore, Amritsar, or any other parts of the Maharaja's possessions shall not be stopped

or molested on their way; on the contrary strict orders shall be issued to facilitate their intercourse, and the Maharaja engages to observe the same line of conduct on his part with respect to Afghanistan.

8. The Maharaja will yearly send to the Shah the following articles in the way of friendship. Fifty five pieces of shawls, twenty five pieces of muslin, eleven dupattas, five pieces of kimkhab, five scarf, five turbans, fifty five loads of Bara rice ( peculiar to Peshawar ).

9. Any of the Maharaja's officers who may be deputed to Afghanistan to purchase horses, or on any other business, as well as those who may be sent by the Shah into the Punjab for the purpose of purchasing piece-goods or shawls, etc., to the amount of eleven thousand rupees, will be treated by both sides with due attention and every facility will be afforded to them in the execution of their commissions.

10. Wherever the armies of the two States may happen to be assembled at the same place, on no account shall the slaughter of kine be permitted to take place.

11. In the event of the Shah receiving an auxiliary force from the Maharaja, whatever booty may be acquired from the Barakzyes in jewels, horses, arms, great and small, shall be equally divided between the two contracting parties. If the Shah should succeed in obtaining possession of such property without the assistance of the Maharaja's troops, the Shah agrees to send a portion of it to the Maharaja by way of friendship.

12. An exchange of Missions charged with letters and presents shall constantly take place between the two parties.

13. Should the Maharaja require the aid of any of the Shah's troops in furtherence of the objects contemplated by this treaty, the Shah engages to send a force, commanded by one of his Principal officers. In like manner the Maharaja will furnish the Shah,when required,with an auxiliary force,composed of Mohammadans and commanded by one of his principal officers, as far as Kabul in furtherence of the object contemplated by this treaty. When the Maharaja may go to Peshawar the Shah will depute a Shahzada to visit him, on which occasion the Maharaja will receive and dismiss him with the honour and consideration due to his rank and dignity.

14. The friends and enemies of each of the three high powers, that is to say the British and Sikh Governments and that of Shah Shuja-ul- Mulk, shall be the friends and enemies to all and to each of them.

15. Shah Shuja-ul-Mulk engages, after the attainment of his object, to pay without fail to the Maharaja the sum of two Lakhs of Rupees, of Nanak Shahi or Kaldar currency, calculating from the date on which the Sikhs troops may be dispatched for the purpose of reinstating His Majesty in Kabul, in consideration of the Maharaja stationing a force of not less than five thousand men, cavalry and

infantry, of the Mohammadan persuasion, within the limits of the Peshawar territory, for the support of the Shah, and to be sent to the aid of His Majesty whenever the British Govt; in consort and council with the Maharaja, shall deem their aid necessary; and when any matter of great importance may arise in the west-ward, such measures will be adopted with regard to it as may seem expedient and proper at the time to the British and Sikh Governments. In the event of the Maharaja requiring the aid of any of the Shah's troops, a deduction will be made in the subsidy in proportion to the period for which such aid may be afforded: and the British Government holds itself responsible for the punctual payment of the above sum annually to the Maharaja so long as the provisions of this treaty are duly observed.

16. Shah Shujah-ul-Mulk agrees to relinquish for himself, his heirs and successors, all claims of supermacy and arrears of tribute over the territories now held by the Mirs of Sindh ( which will continue to belong to the Mirs and their successors in perpetuity ), on condition of the payment of him by the Mirs of such a sum as may be determined, under the mediation of the British Government, one millon five hundred thousand of rupees, and of such payment being made over by him to the Maharaja Ranjit Singh on these payments being completed. Article four of 12th March 1833, will be considered cancelled, and the customary interchange of letters and suitable presents between the Maharaja and the Mirs of Sindh shall be maintained heretofore.

17. When Shah Shuja-ul-Mulk shall have succeeded in establishing his authority in Afghanistan, he shall not attack nor molest his nephew, the Ruler of Hirath, in the possession of the territories subject to his Govt.

18. Shah Shuja-ul-Mulk binds himself, his heirs, and successors, to refrain from entering into negotiation with any foreign State without the knowledge and consent of the British and Sikh Govts; and oppose any power having the desire to invade the Sikh or British territories by force of arm, to the utmost of his abilities.

The three powers, parties in this treaty, viz., The British Govt., The Maharaja Ranjit Singh, and Shah Shuja-ul-Mulk, cordially agree to the foregoing articles. There shall be no deviation from them in any way, whatever, and in that case the present treaty shall be considered binding for ever, and this treaty shall come into operation from and after the date on which the seals and signatures of the three contracting parties shall have been affixed.

Done at Lahore, this twenty six day of June, in the year of our Lord 1838, corresponding with the15th of the month of Asarh 1895 era Bikarmajith.

Signed-- Auckland.

Ranjit Singh.

Shah Shuja-ul-Mulk.

ترجمه : "د هغې عهدنامې چې د حکومت برطانیه رنجیت سنګهه او د شاه شجاع الملک په منځکښې د لاهور په مقام په شپږویشتم جون 1838ء کښې شوې وه :

" هر کله چې د دې نه وړومبے یوه عهدنامه د مهاراجه رنجیت سنګهه او د شاه شجاع الملک ترمنځه شوې وه چې د هغې علاوه دا "مقصد" او د "تتمې" نه څوارلس شرطونه وو. او هر ګاه چې د څهٔ خاص وجوهاتو په بنا باندې د هغې په شرطونو باندې عمل درآمد پاتې شوے وۀ او هر ګاه چې اوس په دې وخت کښې سر ولیم ایچ میکناټن د رائټ آنریبل جارج لارډ آکلینډ جي سي بي ګورنر جنرل هند د طرف نه سره د پوره اختیاراتو په دې کار معمور شوے دے چې هغه دې مهاراجه رنجیت سنګهه سره لاړ شي او د دوستۍ د هغې تعلقاتو په مطابق چې کوم د دواړو حکومتونو په مابین کښې قائم دي یوه عهدنامه وکړي په دې سبب اوس په هغه زړه عهدنامه باندې نظر ثاني کیږي. او یو څو ترمیمونو سره هغه بیا لیکلے شي. دې زړې عهدنامې سره څلور نوي شرطونه په رضامندګۍ او په شمولیت د حکومت برطانیه زیاتیږي. د دې نوې عهدنامې شرطونه په لاندینو اتلسو دفعاتو کښې بیان شوي دي او په هغې باندې به پوره پوره عمل در آمد کیږي .

۱. شاه شجاع الملک د خپل ځان د خپلو وارثانو او د خپلو جانشینانو د طرف نه د ملکیت هر قسم دعویٰ د هغې ټولو علاقو په حقله پریږدي چې کومې د دریائے سندهه په دواړو غاړو پرتې دي او په هغې باندې في الحال د رنجیت سنګهه قبضه ده یعنې کشمیر سره د هغې د قبلې قطب او د سهیل سرحدونو پشمول د قلعه اټک، چهچهه ، هزاره، کهبل، امب او د هغې ماتحت علاقه چې د دریائے سندهه په ګسه غاړه پرته ده او د سندهه په ښۍ غاړه باندې پیښور سره د یوسفزو د علاقې ختک، هشنغر، میچنی، کوهاټ ، هنګو او ټولې علاقې چې د پیښور د لاندې ګڼلے شي عین تر درهٔ خیبر پورې بنو ، وزیرستان، دوړ، ټانک، کرک، کالا باغ، خوشحال ګړ سره د ماتحت علاقې، ډیره اسماعیل خان او د هغې د لاندې علاقه سره د ډیره غازي خان، کوټ متهن، عمر کوټ، او د هغې لاندې علاقه، سنګور، هرنډ، دجل، جاجیپور، راجن پور، او د کچ درې واړه علاقې سره د منکیره او د هغې سره علاقه د ملتان صوبه چې د دریائے سندهه په چپه غاړه ده. دا علاقې او مقامات به د مهاراجه ملکیت او ماتحت ګڼلے شي او د شاه شجاع نهٔ دې علاقې سره اوس څهٔ تعلق شته او نهٔ به ئې چرې آئنده وي. دا به د مهاراجه او د هغهٔ د اولاد پشت په پشت ملکیت وي.

۲. کوم قامونه چې د خیبر په غاړه وسیږي هغوي ته به د دې خبرې اجازت نهٔ وي چې هغوي د خیبر په دې غاړه ډاکې، داړې یا څهٔ بل قسم بدامني وکړي هر چا چې په یو حکومت کښې د سرکاري ماليې غبن کولو نه پس د بل په حکومت کښې پناه واخسته نو دا کس به دا بل حکومت هغهٔ ته واپس حواله کوي او هیڅوک به هغه وله نهٔ بندوي چې کومه د خیبر د

تنگي نه راوځي او د قديم نه د فتح ګړ قلا له د څښنلو اوبهٔ ورکوي.

۳. د هغې زړې عهدنامې مطابق چې کومه د مهاراجه او د حکومت برطانيه په منځکښې شوې ده هيڅا ته به هم اجازت نهٔ وي چې بغير د مهاراجه د راهدارۍ نه د ستلج د ګسې غاړې نه ښۍ غاړې ته راپورې وځي. هم دغه قاعده به د دريائے سندهـ نه په هغه مقام باندې د راپورې وتو په حقله وي چې کوم ځائے کښې دريائے ستلج دريائے سندهـ سره يو ځايے کيږي او هيڅا ته به هم د مهاراجه د اجازت نه بغير د دريائے سندهـ نه د پورې وتو اجازت نهٔ وي.

۴. د شکارپور او د سندهـ د هغې علاقې په حقله چې کومه د دريائے سندهـ په ښۍ غاړه پرته ده هر څهٔ فيصله مناسب او جائز چې سر کلاډ ويډ مهاراجه سره د هغو ښو تعلقاتو د جذبې د لاندې وکړه چې کومه د هغوي دواړو په منځکښې دي. نو شاه ته به هغه فيصله منظوره او قبوله وي.

۵. هر کله چې شاه خپل حکومت په کابل او قندهار کښې مستحکم کړي نو هغه به هر کال مهاراجه له دا څيزونه راليږي يعنې پنځهٔ پنځوس اسونه د اعلیٰ نسل او د ښکلے رنګ او د ښهٔ رفتار، يوولس ايرانے تورې، اووهٔ ايراني خنجرونه پنځويشت ښې قچرې،مختلف قسم ميوه جات خشک او تازه، او سردې از قسم مشک ښې خوږې او مزيدارې دا به ټول کال د دريائے کابل او د پيښور په لاره راستولے شي. انګور ،انار، سيب، بادام، وسکې، پسته، چغجې، هر يو جنس په ډير مقدار کښې سره د رنګ برنګ سلاتين د کپړې يو تان پوستين، کمخواب چې د سرو او سپينو زرو کار پرې شوے وي، او ايراني قالين دا ټول به په شماره کښې يو د پاسه سل توکي وي. او شاه به ئ هر کال راستوي.

۶. هر يو فريق به بل ته د مساواتو په الفاظو کښې خطاب کوي.

۷. د افغانستان کوم سردران چې لاهور، امرتسر يا د مهاراجه نورو مقبوضه ملکونو ته د تجارت په غرض تلل غواړي نو هغوي له په لاره کښې هيڅ قسم تکليف نشي ورکيدے او نهٔ به هغوي څوک منع کوي بلکې حکماً به د هغوي د آمدورفت دپاره سهولتونه مهيا کيږي. او مهاراجه لوظ کوي چې هغه به هم په دې طريقه د افغانستان ملک سره خپله رويه ساتي.

۸. مهاراجه به هر کال شاه ته لاندني څيزونه د دوستي په طريقه راستوي. پنځهٔ پنځوس شالونه، پنځويشت تانه ململ، يوولس لوپټې، پنځهٔ ټوکي د کمخواب، پنځهٔ څادرونه او پنځهٔ پټکي، پنځهٔ پنځوس ستې د باړې کمودې ( چې د پيښور مخصوص پيدا وار دے)

۹. کهٔ چرې د مهارراجه څوک افسر افغانستان ته د اسونو يا د بل څهٔ د خريد دپاره لاړو او دغه شان کهٔ چرې د شاه څوک افسر پنجاب ته د ټوکو د شالونو د خريد دپاره لاړو چې تر يوولسو زرو روپو پورې قيمت لري نو هر يو فريق به د هغه افسر مناسب خاطر کوي. او هغهٔ له به د خپل کار سر ته په رسولو کښې د هر قسم سهولتونه ورکوي.

۱۰. هر چرې کۀ د دواړو حکومتونو د فوځونو قيام په يوځاے باندې راغلو نو په هيڅ صورت به د غټې غوښې حلاله نۀ کيږي.

۱۱. په شرطيکه مهاراجه خپل امدادي فوځ شاه ته ورکړي نو هر څۀ د لوټ مال لکه جواهرات ، اسونه، اسلحه لويه او وړه چې د بارکزو نه په لاس راشي نو هغه به په دواړو فريقو کښې په مساوي حصه کښې تقسيميږي کۀ چرې څۀ مال شاه له بغير د مهاراجه د فوځ د مدد نه په لاس ورغلو نو شاه دا لوظ کوي چې د هغې نه به د دوستي په طريقه يوه حصه مهاراجه له استوم.

۱۲. دواړه فريق به يو بل له خپل خپل سفيران سره د سندونو او تحفو هميشه ليږي.

۱۳. د دې عهدنامې د اصل مقصد د حصول دپاره کۀ چرې مهاراجه د شاه نه د هغۀ د فوځ امداد وغوښتو نو شاه اقرار کوي چې زۀ به دا فوځ د خپل يو لوے افسر د کمان لاندې استوم. هم دغه شان د دې عهدنامې د اصل غرض د حصول دپاره هر چرې چې شاه وغواړي نو مهاراجه به هغۀ له امدادي فوځ چې هغوي به مسلمانان وي او د هغۀ د يو لوے افسر د کمان لاندې به وي تر کابله پورې د جنگيدو دپاره ورکوي. هر چرې چې مهاراجه پيښور ته راشي نو شاه به خپل يو شهزاده د هغۀ د ملاقات دپاره راليږي. مهاراجه به هغۀ له د خپلې درجې او عهدې مطابق د راتلو او د رخصتيدو په وخت کښې مناسب عزت ورکوي.

۱۴. د دې هر درې واړو حکومتونو يعنې د برطانيه، سکهانو او د شاه شجاع دوستان او دشمنان به د يو بل هم دوستان او هم دشمنان وي.

۱۵. شاه شجاع الملک دا اقرار کوي چې د خپل مقصد حاصلولو نه پس به زۀ ضرور مهاراجه ته د دوۀ لکو روپو رقم نانک شاهي يا کالدار د هغه تاريخ نه ادا کوم چې د کوم تاريخ نه د سکهانو فوځ ما په کابل کښې د کښينولو دپاره روان کړي. او د دې رقم په بدله کښې به هغه يو فوځ چې په شمار کښې به کم نه کم پنځۀ زره سوارۀ او پياده وي او مسلمانان به وي او د پيښور په علاقه کښې به ئ د شاه د امداد دپاره ساتي او چې حکومت برطانيه په صلاح د مهاراجه د دې فوځ امداد ضرور وګڼي نو دا فوځ به د شاه امداد له روانيږي. او هر کله چې څۀ اهمه معامله قبلې طرف ته پيښه شوه نو د هغې په حقله هر څۀ تجاويز چې په هغه وخت مناسب وي نو حکومت برطانيه او د سکهانو حکومت به ئ په عمل کښې راولي کۀ چرې مهاراجه ته د شاه د څۀ فوځ ضرورت پيښ شو نو په دې صورت کښې به هغه هومره روپۍ چې څومره مودې دپاره شاه امداد ورکړے دے د دې رقم نه منها کيږي. حکومت برطانيه د دې رقم د باقاعده ادائيګۍ ذمه واري اخلي. تر کومه پورې چې د دې عهدنامې په شرطونو باندې باقاعده عمل درآمد کيږي.

۱۶. شاه شجاع الملک اقرار کوي چې زۀ د خپل ځان د خپلو وارثانو او د خپلو

جانشینانو د طرف نه د میران سندهـ په کل موجوده علاقه باندې د مشرۍ هر قسم دعوی او د باج د بقایې دعوې پریږدم دا ټولې علاقې به بدستور د میران سندهـ ملکیت ګڼلے شي. بشرطیکه میران سندهـ شاه شجاع له هغه هومره رقم ادا کړي چې کوم د حکومت برطانیه په وساطت فیصله شي. تر پنځلس لکو روپو پورې. او دا رقم به هغه مهاراجه رنجیت سنګهـ ته حواله کوي. هرکله چې دا رقم پوره ادا شي نو د دولسم مارچ 1833ء د عهدنامې شرط نمبر څلورم به منسوخ شي. او د مهاراجه او میران سندهـ تر منځه به حسب رواج لکه چې څرنګ دستور وو د خطونو او د تحفو تلل راتلل جاري شي.

۱۷. هرکله چې شاه شجاع په افغانستان کښې د خپل حکومت په استحکام کښې کامیاب شي نو هغه به خپل ورارۀ باندې نۀ حمله کوي او نۀ به د هغۀ د هرات په حکومت باندې بلوسیږي.

۱۸. شاه شجاع د خپل ځان د خپلو وارثانو او د خپلو جانشینانو د طرف نه اقرار کوي چې زۀ به د حکومت برطانیه او د سکهانو د حکومت د علم او منظورۍ نه بغیر هیڅ پردي حکومت سره عهدنامه نۀ کوم او زۀ به د هر هغه حکومت مقابله کوم چې کوم په زور باندې د سکهانو یا د برطانیه په حکومت باندې حمله کول غواړي.

دا درې واړه حکومتونه چې په دې عهدنامه کښې فریق دي یعنې حکومت برطانیه، مهاراجه رنجیت سنګهـ او شاه شجاع الملک مذکوره بالا شرطونه په ښۀ خوښۍ باندې مني د هغې د شرطونو نه به یوه ذره هومره انحراف هم نۀ کیږي. او په دغه شان به دا موجوده عهدنامه د همیش دپاره واجب التعمیل ګڼلے شي. دا عهدنامه به د هغې وخت نه د عمل درآمد قابل ګڼلے شي چې څۀ وخت اقرار کونکي فریق خپل خپل دستخطونه او مهرونه په هغې باندې ولګوي.

په مقام د لاهور ؤشوه نن په شپږویشم جون 1838ء مطابق اساړ 1895 بکرماجیت.

دستخط شد آکلینډ، رنجیت سنګهـ او شاه شجاع الملک

رنجیت سنګهـ سره د دې عهدنامې کولو نه پس بیا میکناټن شاه شجاع له لدهیانې ته راغے او د لوے بحث مباحثې نه پس ئ د شاه شجاع لاندیني شرطونه په ځان باندې تسلیم کړل. په دې شرطونو کښې زمونږ د مطلب دپاره شرط اول، دویم، دریم، څلورم غیر ضروري دي.

شرط پنځم : انګریزي افسران به زما د منظورۍ نه بغیر د افغانستان په خلقو باندې د هیڅ قسم حکم نۀ چلوي. خواه هغه خلق سپاهیان وي یا د عام د رعیت خلق.

په دوران بحث کښې میکناټن د دې شرط متعلق شاه شجاع ته ووئیل چې په دې شرط به په ډیر ښۀ شان سره عمل کیږي. شپږم، اووم او اتم شرطونه هم غیر ضروري دي

په افغانستان باندې د لام ترلو دپاره لارډ آکلینډ څۀ فوځ د فیروز پور په مقام باندې راجمع کړو او څۀ فوځ ته ئ د بمبئ نه ملک سندهـ په لاره د افغانستان په طرف د روانیدو حکم ورکړو . تجویز دا وۀ چې د فیروز پور او د بمبئ فوځ سره به شاه شجاع د ملک سندهـ او درۀ بولان په لاره قندهار ته څان رسوي او د قندهار د اخستلو نه پس به شاه شجاع د دې فوځ په امداد سره په غزني او د غزني نه پس په کابل پیش قدمي کوي. او شهزاده تیمور د شاه شجاع زوے به د سکهانو امدادي فوځ سره د درۀ خیبر په لاره د جلال اباد او د جلال اباد نه پس په کابل وروړاندې کیږي. سره د دوستئ او د اتحاد د عهدوپیمان رنجیت سنگهـ د انگریزانو دې حمله آور فوځ له په خپله علاقه کښې د لارې ورکولو نه انکار وکړو ځکه چې د هغۀ د فیرنگیانو په نیک نیتي باندې شک وۀ او د هغۀ دا خیال وۀ چې کۀ چرې یو ځل د فیرنگیانو دا دومره عظیم الشان فوځ زما په ملک کښې داخل شو نو ډیره اغلبه ده چې زما نه ټول ملک په زور قبضه کړي له دې کبله هغۀ په دې تیره شوې لوظنامه کښې د دې قسم اقرار فیرنگیانو سره ارادتاً ونۀ کړو. په دې سبب هغوي مجبور شول چې خپل فوځونه د درۀ خیبر د لنډې لارې په ځاے د ملک سندهـ او د درۀ بولان په سخته لاره باندې افغانستان ته ورسوي اگر چې رنجیت سنگهـ شهزاده تیمور او د هغۀ مربي سر کلاډ ویډ له په خپل ملک کښې د تللو اجازت ورکړو ولې د درې سوه اتیا سړو نه زیاتي نور انگریزي فوځ ئ هغوي سره په خپل ملک کښې تیریدو ته پرې نښودو او د خپلې دوستئ او عهدوپیمان لحاظ ئ هیڅ قدر له ونۀ کړو. دا د فیرنگیانو هغه نزدې دوست او اتحادي وۀ چې د چا دپاره هغوي دوست محمد خان سره د دوستئ د جوړولو نه انکار کړے وۀ. (۱)

---

(۱) ولې د رنجیت سنگهـ دا شکونه د فیرنگیانو برخلاف بالکل بې ځایه نۀ وو ځکه چې هغۀ ته د خپلې مشاهدې نه دا ثابته شوې وه چې هم په دې طریقه د کمپنئ فوځونو ډیر ملکونه په چل ول لاندې کړي دي. او بې ډزه ډوزه ئ ډیر حکمرانان دغه شان د خپلو حکومتونو نه محروم کړي دي کۀ فیرنگیان د دوست محمد خان خلاف د سکهانو په مرسته ودریدلي وو نو د هغې دا وجه نۀ وه چې گني د دوست محمد خان په نسبت د هغوي رنجیت سنگهـ زیات خوښ وۀ بلکې د هغوي د ابتدا نه د پنجاب د اخستو نیت وۀ. او د پنجاب سره ملحق علاقه یعنې پېښور او موجوده ټول صوبه سرحد هم د هغوي په سترگو کښې وۀ نو هغوي د دوست محمد خان په نسبت د رنجیت سنگهـ د صوبه سرحد علاقه اخستل اسان ښکاره کیدل. کۀ چرې د پنجاب د مسخر کیدو په وخت د پېښور او سرحد نوره علاقه د دوست محمد خان په قبضه کښې وے نو پښتنو به د خپل پدري وطن د ازادئ دپاره خپل ځانونه په فیرنگیانو بالکل قربان کړي وو ولې د سکهانو په موجودگئ کښې پښتنو د خپل ملک د حفاظت دپاره د فیرنگیانو برخلاف هډو جنگ ونۀ کړو. او په دا شان پنجاب فیرنگیانو مسخر کړو.)

رنجیت سنګهـ فیرنګیانو ته په صفا الفاظو کښې ووئیل چې زهٔ انګریزي فوځ له په خپل ملک کښې لار نهٔ ورکوم بلکې خپل فوځ به د شهزاده تیمور د حفاظت دپاره او په افغانستان باندې د خیبر په لاره د پیشقدمۍ په غرض ورکړم. چنانچه شرط نمبر دیارلسم هم د دې مطلب دپاره په دې لوظنامه کښې درج شو.

د دې عهدنامې د لوستو نه به د دې تاریخ لوستونکو ته دا خبره واضحه شوې وي چې شاه شجاع خپل ځان نهٔ صرف د فیرنګیانو په لاس کښې مکمل طور باندې ورکړو بلکې رنجیت سنګهـ سره ئې هم په ډیرو ذلیلو شرطونو باندې دا لوظنامه وکړه. نهٔ صرف شاه شجاع د پښتنو د ملک یعنې د افغانستان یوه لویه حصه چې په هغې کښې تقریباً دیرش لکه پښتانهٔ اباد وو رنجیت سنګهـ ته د همیش دپاره پریښوده بلکې د پښتنو د زور عظیم الشان سلطنت لویې لویې ټکړې لکه کشمیر، ملتان، ډیره غازي خان، سندهـ وغیره ملکونه ئې هم ورته پریښودل او ځان ئې د هغهٔ یو باجګزار او ماتحت تسلیم کړو. خارجي ملکونو سره ئې خپل سیاسي تعلقات نهٔ صرف د فیرنګیانو بلکې د سکهانو هم ماتحت کړل. او په شرط نمبر دیارلسم کښې هغهٔ دا اقرار وکړو چې هر کله رنجیت سنګهـ په دوره باندې پیښور ته راشي نو شاه شجاع به خپل یو زوے د هغهٔ د سلامۍ دپاره رالیږي.

ناظرینو ته به دا هم یاد وي چې امیر دوست محمد خان، عظیم خان او د هغهٔ نورو ورونو قبل د دې نه شاه شجاع ته د افغانستان تاج د خپله لاسه صرف په دې شرط پیش کړے وهٔ چې هغه دې د بارکزو او د نورو قبیلو اختیارات په نظام سلطنت کښې په ځان باندې تسلیم کړي مګر دې متکبر او سرتیز انسان په خپلو شاهي اختیاراتو کښې د قام خلقو له هیڅ دخل ورکول نهٔ غوښتل. او نهٔ هغهٔ په خپل حکومت کښې د نورو قبائلو څهٔ حقوق ګڼل. چنانچه شاه شجاع د دا قسم بادشاه کیدو نه انکار کړے وهٔ او بیا فیرنګیانو سره واپس شړونکے شوے وهٔ. اوس هغهٔ د غیر قومونو دخل اوماتحتي په خپل سلطنت کښې د برائ نام بادشاه کیدو دپاره منظور کړل. او د خپل قام او ملک آبرو او عزت ئې د پردو خلقو د لاسه تباه او برباد کړو. د خپلو عزیزانو او د قوم د مشرانو دخل خو هغهٔ ته ناجائز معلومیدل مګر د غیر قومونو او د پردو خلقو دخل هغهٔ ته هیڅ عار او شرم نهٔ ودریدلو.

مفصله ذیل فوځونه هغهٔ سره چې افغانستان باندې د چپاؤ کولو دپاره د فیرنګیانو د طرف نه روان شول:

☆ د سندهـ فوځ چې د بنګال نه راغلے وهٔ او د میجر جنرل ولوبي کائن د کمان لاندې وهٔ نههٔ زره او پنځهٔ سوه سړي وو.

☆ د میجر جنرل ډنکن ریزرو ډویژن چې شلور زره دوه سوه او پنځوس کسان وو.

☆ د شاه شجاع خپل برتي کړے فوځ شپږ زره سړي وو.

☆ د بمبئ فوځ زير کمان هز ايکسي لنسي لفټيننټ جنرل سر جان کين چې بيا وروستو لارډ کين شو پنځۀ زره او شپږ سوه سرې وو.

☆ سندهـ فورس يا بمبئ ريزرو درې زره ځوانان وو

ميزان کل : اتۀ ويشت زره درې سوه پنځوس

قبـل د دې نـه چې دا فوځونه روان شوے وے لارډ آکلينډ ګورنر جنرل سر اليګزنډر بـرنـس بر سندهـ ته د خيرپور ميرانو له د جارحانه اومدافعانه عهدنامې کولو دپاره واستولو او دغـه شان سر هنري پوټنګر کوز سندهـ ته د حيدراباد ميرانو سره د عهدنامې دپاره مقرر کړو او ميـجـر ميـکسين ئ نواب بهاولپور له هم په دې غرض واستولو. دا عهدنامې ځکه ضروري وے چې افغانستان ته د انګريزي فوځ د تلو لار په دې دريو واړو علاقو کښې پرته وه او بغير د دې حکومتونو د اجازت نه انګريزي فوځ پيشقدمي نۀ شوه کولے.

ميـجـر ميـکسين خو په ډيرې اسانتيا نواب بهاولپور سره لوظنامه وکړه او په دې وجه انـګريزي فوځ ته د هغۀ په علاقه کښې په تيريدو او په خرڅ خوراک کښې هيڅ تکليف پيښ نـۀ شـو ولـې کـومې عهـدنـامې چې اخر د سندهـ حکومتونو سره باقي دوؤ انګريزي افسرانو وکـړې د هغې قصه بجائ خود يو تاريخ دے. خلاصه او مختصره خبره دا ده چې د ډير عمر نه پس د ميران سندهـ په زړۀ کښې دا شک وۀ چې فيرنګيان زمونږ علاقې ته د طمعې او لالچ په ستـر ګـو ګوري. هر يو انګريزي افسر يا سفارت چې د هغوي په ملـک کښې به داخليدو نو د هـغـوي به دا يقين وۀ چې دا ټول افسران صرف زمونږ مالي فوځې او انتظامي طاقت معلومولو دپاره او د فوځې استحکاماتو د حال اخستو په غرض زمونږ علاقې ته راځي او هرکله چې وي دوئ بـه مونږ د خپلو علاقو نه محرومه کړي. د هغوي دا خيال بالکل درست وۀ په قسماقسم بهانو او چالونو د فيرنګيانو پوليټيکل افسران د سفارتونو او د تجارتي تعلقاتو قائمولو په بهانه د دوئ مـلـک تـه وقتـاً فـوقتاً لاړل او خپل حکومت ئ د دې ملـک د ټولو واقعاتو نه پټ پټ خبرولو.

وړومبـے د دې نـه چې مـونږ د انـګـريـزي فوځ د افغانستان په طرف د روانيدو قصه شـروع کـړو مـناسب دي چې مونږ د ميران سندهـ او د انګريزي حکومت هند په تعلقاتو لږه شـان تبـصـره وکړو. مونږ خپلو لوستونکو ته دا ښيو چې په کوم چل او فريب او هنر سره ورو ورو فيـرنـګيانو د ميران سندهـ نه خپله ټوله علاقه واخسته او هغوي ئ د هميش دپاره د خپل حکومت نه وويستل په هغه زمانه کښې د سندهـ د علاقې حدونه دا شان پراتۀ وو :

قـطب اړخ ئ کـچ ګنداوه، پنجاب او بهاولپور ضلعو سره لګيدلے وۀ او د سهيل حد ئ عيـن تـر سـمـنـدره پـورې رسيـدلـے وۀ. نمرخاتۀ ئ راجواړې وے او قبلې ته ئ بلوچستان پـروت وۀ. د دې عـلاقې ټوله رقبه قريباً يو لک مربع ميل وه. څۀ وخت چې نپولين بونا پارټ

د یورپ اکثر ملکونه فتح کړل نو د هندوستان د فتح کولو شوق ئ هم په زړهٔ کښې راپیدا شو
او د دې مقصد د حاصلولو دپاره ئ الیګزنډر زار روس سره عهدنامه هم وکړه چې د ایران په
لار به نپولین په هندوستان باندې حمله کوي. چنانچه هغهٔ یو ډیر شاندار سفارت تهران ته شاه
ایران سره د جنرل ګارډاني د مشرئ لاندې راواستولو. په دې سفارت باندې د هندوستان
انګریزي حکومت او حکومت برطانیه ډیر هیبت واخستل او د نپولین مقصد له ئ د شکست
ورکولو دپاره هر طرف ته خپل سفارتونه ولیږل لکه چې څرنګ د دې نه وړومبے په تفصیل
سره ذکر شوے دے. فیرنګیانو آنریبل ماونسټیورټ ایلفنسټن د پښتنو بادشاه شاه شجاع له
څهٔ وخت چې هغه برسر حکومت وهٔ پیښور ته په سفارت د جارحانه او مدافعانه عهدنامې
کولو دپاره استولے وهٔ. دغه شان سر جان میلکم تهران ته او نکولس هینکے سمتهـ د بمبئ
سول سروس میران سندهـ له واستولے شو. مسټر سمتهـ سره لفټیننټ پوټنګر چې بیا
وروستو سر هنري پوټنګر شو هم په دې سفارت کښې شامل شو. دوئ دواړو سره د سفارت
د نورو ملګرو په اوویشتم اپریل 1809ء د بمبئ نه په جهازونو کښې کراچئ طرف ته روان
شول او په نولسمه مئ باندې د هغوي جهازونه بندرګاه کښې داخل شول. د دې سفارت مشر
مسټر سمتهـ وهٔ. کراچئ د میران سندهـ ملکیت وهٔ نو د هغې سندهي ګورنر د انګریزانو د
جهازونو په بندرګاه کښې په بې اجازته راتلو ناراض شو مګر مسټر سمتهـ د هغهٔ د خفګان
څهٔ پروا ونهٔ کړه او د جهازونو لنګر ئ عین په بندرګاه کښې واچولو. د کراچئ حاکم د
سمتهـ په راتلو په زړهٔ کښې ویریدو او حکم ئ وکړو چې د دې سفارت یو سړے دې هم د
کراچئ په قلعه کښې نهٔ راننوځي. د دې نه علاوه د کراچئ نه په اتهٔ میله فاصله باندې هغهٔ یو
لوے فوځ د انګریزي سفارت د نقل و حرکت د نګرانئ دپاره تیار وساتلو. هغهٔ سره وړومبے
هم دا ویره وه چې هر کله فیرنګیان د یو ملک د اخستو نیت وکړي نو هغوي هغې ملک ته یو
لوے سفارت ورولیږي. بیا د سفارت په جامه کښې د هغوي افسران د ملک ټول حالات او
واقعات په جائزو او ناجائزو طریقو معلوم کړي. د هغوي د فوځې استحکاماتو او د فوځ
طاقت او د ملک نشیب و فراز د هغې ملک د خلقو نه په رشوتونو باندې معلوموي. بیا ورو
ورو هغوي په هغې ملک کښې تجارتي کوټې او د مال د خرڅولو منډهی قائمې کړي او څهٔ
لږه موده پس د هغې ملک حکمرانانو سره په څهٔ چل او هنر باندې جګړه او پرېنج واچوي.
او په اخر کښې هغوي په هغې ملک باندې فوځ کشي وکړي او ټول ملک ترینه په زور
قبضه کړي. دغه شان کار هغوي د هندوستان راجګانو او نوابانو سره کړے وهٔ. او میران
سندهـ په دې خبره خبر وو چې کهٔ چرې دې قوم یو ځل زمونږ په ملک کښې پښه راوړ.ده
کړه نو په لږه موده کښې به مونږ هغوي د خپل حکومت نه وباسي. چنانچه هغوي سره فکر وهٔ
چې چرته فیرنګیان زمونږ د میلمستیا نه ناجائزه فائده وانخلي او د اور په بهانه د کور میرمن نهٔ

شي. سره د دې تولو خبرو د هر حکومت دا قاعده او رواج وي چې د سفارتونو دې ښهٔ خاطر او مدار وشي او هغوي له دې د خفگان څهٔ وجه په لاس ور نهٔ شي. چنانچه په شپاړسم مئ باندې مستر سمته د خپلو جهازونو نه راکوز شو او په يو ځاے ديره شو چونکې د سفارت افسرانو ته د کراچۍ په قلعه کښې د ورتلو اجازت نهٔ وهٔ په دې وجه سمته سخت ناراض وهٔ. نو څهٔ وخت چې د کراچۍ گورنر د هغهٔ ملاقات له لاړو نو دې متکبر او مغرور انسان د هغهٔ د کتلو نه انکار وکړو هرچند چې گورنر سمته ته سوال جواب واستولو چې دا حکم يواځې د فيرنگيانو دپاره نهٔ دے بلکې د سلطنت يو سړي ته هم په دې قلعه دننه د تلو اجازت نشته مگر د سمته تسلي ونهٔ شوه او هغهٔ ته ئ د مستر ايلس په خلهٔ سوال جواب وليږلو چې د دې حکم په تعميل کولو کښې د انگريزي سفارت هتک کيږي.

باوجود د سمته د دې رعونيت نه گورنر د ټول سفارت د ميلمستيا فرائض ادا کول او سمته ته ئ ووئيل چې کهٔ تهٔ ما وينې او کنه خو زهٔ به ستا په حيثيت د ميلمه قدر او عزت کوم. دې سره گورنر کراچي هم ډير مکمل انتظام د دې خبرې وکړو چې د ميران سنده په رعيت کښې دې هيڅوک هم د سفارت افسرانو او ملازمانو سره آمدورفت او راشه درشه نهٔ ساتي.

د دې نه پس د ميران سنده او د انگريزي سفير په منځکښې د خفگان ډير وړد خط و کتابت وشو. سمته په خپلو خطونو کښې ميران سنده ته د پوره ادابو او القابو د الفاظو د ليکلو نه انکار وکړ نو ميران سنده ورته حکم وکړو چې خپل جهازونه د بندرگاه نه وباسئ اخر فريقينو خپله خپله خبره پريښوده او انگريزي سفارت د سنده صدر مقام حيدراباد ته روان شو.

په لسم د جون دا سفارت د کراچۍ د بندرگاه نه روان شو او پنځلس ورځې پس د ټهټه مقام ته ورسيدو په دې ځاے کښې ايسټ انډيا کمپني د ډيرې مودې نه يوه تجارتي منډهۍ قائمه کړې وه. د سفارت افسران يو څو ورځې هم په دې ځاے کښې پاتې وو او د دې علاقې ټول جغرافيائي او تجارتي اطلاعات ئ حاصل کړل په ټهټه کښې د سنده د حکمرانانو په زړهٔ کښې د سفارت د نيک نيتۍ په بابت کښې نور ډير شکوک راوچت شول. ځکه چې د سفارت انگريزي افسرانو د سنده د علاقې ډير خلق ځان سره نوکران کړل او د هغوي نه به ئ په دې چل د ملک ټول سياسي او پوليټيکل حالات معلومول. چنانچه ولي محمد خان نومے سندهي افسر دا ټول خلق گرفتار کړل او د فيرنگيانو د ملازمت د کولو نه ئ منع کړل. د دې نه پس دا سفارت حيدراباد طرف ته روان شو.

لفټيننټ پوټنگر په خپل کتاب "پوټنگرز بلوچستان" کښې وائي چې "څهٔ وخت مونږ د ټهټه مقام ته روان شو نو په لاره کښې مستر سمته له د ميران سنده له طرف نه يو

بـل خط راورسيدو چې په هغې کښې سفير انګريزي ته ليکلي شوي وو چې د حکومت سندهـ يـوه کشتي به عنقريب تاسو ټول د درياب په لاره حيدراباد ته راورسوي. ولې مونږ د ورومبے نه دا تجويز کړے وۀ چې په دې ځاے کښې ځۀ داسې ښه بهانه جوړول پکار دي چې مونږ دوه ټولي شو او صدر مقام ته په دوؤ بيلو بيلو لارو وروړسو او په دا شان د دې شکمن حکومت د مـلک مکمل جغرافيائي حالات معلوم کړو. دا بهانه داسې ښه زمونږ لاس له راغله چې نۀ خو سندهيان خفه شول او نۀ زمونږ په تجويز کښې ځۀ نقص راغے.

کـومـه کشتـۍ چـې زمـونـږ دپـاره راستـولے شوے وه هغه دومره وړه وه چې زمونږ د سفارت نيم افسران په مشکل په هغې کښې ځائيدے شو پس مسټر ايلس او کپتان ميکسفيلډ او زۀ (يعـنـې پوټنګر) په کشتۍ کښې روان شو او مسټر سمتهـ د نورو افسرانو د خشکې په لاره بـانـدې روان شـول. د سفـيـر مسـټـر سـمتهـ د هداياتو په مطابق مسټر ايلس فوراً د ولي مـحـمـد خـان د کتو دپاره ورغے او د سندهي ملازمانو د ګرفتارولو متعلق ئې په ډيرې سختـۍ هـغۀ تـه خبـرې وکړې ولي محمد خان هم په ډيرو سختو الفاظو کښې مسټر ايلس ته جواب ورکـړو. او ورتـه ئې ووې چې انـګـريـزان ځۀ څيزونه دي ولې تاسو خپل ځانونه د دې ملک مالکان ګڼئ زمونږ چې څرنګ خوښه وي هغه شان سلوک به خپل رعيت سره کوؤ کۀ زمونږ رضـا وي مونږ به هغوي په بينتونو ټکوؤ غوږونه به ترينه پريکړو او په دار به ئې وخيژوؤ بلکې که ماته مناسب ښکاره شي نو ټول ټهټـه به وسوزوم."

اخر کار انګريزي سفير د قسماقسم دپکو او دوړو نه پس حيدراباد ته ورسيدو ميران سـنـدهـ خپـل ذاتـي مـلازمـان هـغـۀ ته د پخير راتلو دپاره ورولیږل او لوے لوے شکرۍ ئې د متـهـايـانـو ورواستولے مګر مسټرسمتهـ پخپله هغوي سره په دې وجه ملاقات ونۀ کړو چې دا خـو د ميـران سـنـدهـ خـدمتګاران دي نو مسټر ايلس ته ئې ووئيل چې تۀ هغوي سره ووينه او ميـلـمستيـا تـريـنـه واخله. ميران سندهـ په دې خبره هم ډير ناراض شول او د مشتاق رام نومے ديـوان په لاس ئې د دې په حقله مسټر سمتهـ ته خط وليکلو مګر سمتهـ خپله غلطي ونۀ منله. او د دې پـخير راتلو په بدل کښې ئې خپل منشي ميران سندهـ له وليږلو. خو ميران سندهـ هم هـغه منشي دننه قلعه ته راپرې نۀ ښودو او هغۀ سره د ملاقات کولو نه ئې انکار وکړو. اخر کار لـس اتـۀ ورځې پس انګريزي سفير ميران سندهـ سره پخپله د ملاقات دپاره لاړو او د دوستـۍ د عهـدنـامـې کـولـو دپاره ئې ورته تجويز پيش کړو. ميران سندهـ ولي محمد خان، اخون باقا خـان او مشتـاق رام نـومـے هـنـدو د دې عهدنامې د شرطونو د فيصله کولو دپاره مقرر کړل. هر کله چې د ميران سندهـ د دې وزيرانو او د انګريزي سفير ترمنځه په سياسياتو باندې خبرې اتـرې کيـدلے نو لفټيننټ پوټنګر پټ پټ په ملک کښې د علاقې حالات راجمع کول د ډير ګفت و شنيد نه پس په دې دواړو حکومتونو کښې د دوستۍ عهدنامه وشوه. او هر حکومت

خپل خپل افسران د یو بل صدر مقام ته واستول.

انگریزان د میران سندهـ نه د دې عهدنامې په حاصلولو باندې بیشانه ډیر خوشحاله شول او په پنځویشتم اګست د حیدراباد نه رارخصت شول کوم اطلاعات او حالات چې د انگریزي سفارت افسرانو د خپل سفر په دوران کښې حاصل کړي وو ګورنر جنرل هغه لا نامکمل ګڼل پس هغوي دا اراده وکړه چې نۀ صرف د ملک سندهـ بلکې د ملک سندهـ نه په قبله باندې د ټولو ملکونو نقشې او جغرافیائي حالات معلوموول پکار دي. د دې کار دپاره هنري پوټنګر او کپتان چارلس کرسټي خپل خدمات پیش کړل چنانچه هغه منظور شو او هنري پوټنګر خپل ځان د سندر جي سیوا جي نومې د اسونو د یو سوداګر مختار کار ظاهر کړو او د هندوانو جامې ئې واغوستې. په دویمه جنوری کال 1810ء کښې پوټنګر او کرسټي د بمبئ نه رارون شول او په شپاړسم د دې میاشتې هغوي د سون میانئي بندر ګاه ته ورسیدل او د شپې په تیارې کښې اوچې ته راکوز شول. دې دواړو افسرانو د سندر جي سیوا جي نه چې د مدراس او د بمبئ د ګورنمنټ د اسونو ټیکیدار وۀ چیټې د دې غرض دپاره واخستې چې دوئ قلات ته چې د بلوچستان صدر مقام دے د هغۀ د طرف نه د اسونو د خرید دپاره ځي دې سندر جي سیوا جي هغوي سره خپل یو هندو ګماشته هم چې د هغۀ نوم پټهم برداس وۀ د خلقو د شک رفع کولو عین تر قلات پورې ملګرے کړو. حکومت دې افسرانو له د اخراجات او د نورو ضروریاتو دپاره ډیرې د سرو زرو پاسې ورکړې او د دې نه علاوه کپتان کرسټي ته دا اختیار وۀ چې هر څومره روپۍ د هغۀ پکار وي نو هغه دې د هغه هومره رقم هنډۍ سیوا جي سندر جي له په ګورنمنټ بمبئ باندې ورکړي.

څۀ وخت چې دا دواړه افسران سره د دوؤ هندوستاني نوکرانو او د سندر جي د ګماشته د سون میانئي بندر ګاه ته راورسیدل او دوئ خپل سامان کوز کړو نو جام صاحب چې د هغې ملک راجه وۀ پټهم برداس پسې سړے ولیږلو او د څۀ خبرو نه پس ئې ورته ووئیل چې زما په خیال کښې دا دواړه فیرنګیان چې تاسو سره په کشتۍ کښې راغلي دي سوداګران نۀ دي. زۀ د هغوي د آئنده ارادې او اصلي غرض معلوموول نۀ غواړم مګر کۀ چرې هغوي افسران وي نو چې زۀ ئې د ځان په شان وګڼم او خاطر ئې وکړم ماته اصلي حال ووایه او یقین وکړه چې زۀ به دا خبره هیچا ته نۀ کوم . مګر پټهم برداس ورته ووئیل چې دا د سندر جي ملازمان دي او قلات ته د اسونو د خرید دپاره روان دي. په دغه شان دوئ دواړه په دې ټوله علاقه کښې عین تر قلات پورې په ډیرو تکلیفونو اومصیبتونو وګرځیدل او د سندهـ او د بلوچستان ټول حال ئې معلوم کړو اخر کار په څوارلسمه جولایۍ هغوي د ایران په علاقه کښې کاشان ته راورسیدل. او قریباً دوه زره څلوره سوه او دولس میله لار ئې په اووۀ میاشتې کښې ووهله. په شپږم د جنورۍ کال 1811ء هغوي د ایران نه بمبئ ته راورسیدل او یو لوے

کتاب ئ چې د هغې نوم "د پوټنګر سفر په بلوچستان کښې" دے ولیکلو.

د دې نه پس د میران سندهـ او په حکومت هند کښې تعلقات خوشګوار وو مګر هر کله چې انګریزانو په 1819ء کښې د کچ علاقه لاندې کړه نو د میران سندهـ په زړونو کښې بیا د خپل ملک په حقله خطره پیدا شوه او اګر چې د فیرنګیانو او د هغوي په منځکښې د دوستۍ ډیرې لوظنامې شوې وې ولې هغوي د فیرنګیانو په دومره نزدې راتلو باندې ډیر فکرمند وو. له دې کبله به د هغوي کوشش همیشه دا وهٔ چې هیڅ یورپین افسر دې د کچ د سرحد نه د هغوي علاقې ته نهٔ راپورې وځي بلکې کوم انګریزي سفیر چې په کال 1820ء کښې د بمبۍ نه سندهـ ته د دې دواړو حکومتونو په منځکښې د دوستۍ د تعلقات تازه کولو دپاره تلے وهٔ هغهٔ سره هم میران سندهـ ډیر د سرد مهرۍ سلوک کړے وهٔ ولې په کال 1828ء کښې میر مراد علي خان سخت ناجوړه شو نو هغوي ناساپه د دې کال په درویشتم اکتوبر یو ډیر د دوستۍ خط د کچ ریزیډنټ ته ولیکلو چې مونږ له دې ډاکټر جیمز برنس چې د کچ د ریزیډنټ سرجن وهٔ د هغهٔ د علاج دپاره راشي. انګریزانو چې د سندهـ د حاکمانو په رویه کښې دا ناساپې تبدیلي ولیده نو شکمن شو چنانچه ډاکټر برنس پخپله وائي چې ماته خپلو ډیرو دوستانو نصیحت وکړو چې تر څو پورې ستا د حفاظت دپاره پوره پوره انتظام نهٔ وي شوے تر هغې د سندهـ علاقې ته مهٔ پورې وځه ولې ډاکټر برنس ته د خپل قوم د خدمت دا موقع چې په لاس راغله نو هغهٔ کله په دې خبرو غوږ کښیښودو هغهٔ د دې خطرو هیڅ پروا ونهٔ کړه او په پنځویشتم اکتوبر حیدر اباد سندهـ ته روان شو. او یو معمولي غوندې د فوځ یوه دسته ئ د ځان د حفاظت دپاره واخسته. میران سندهـ سره د فیرنګیانو د خوشګوار تعلقاتو د پیدا کولو او د انګریزي اقتدار اثر او رسوخ زیاتولو دپاره د دې نه بله ښهٔ موقع ښه کیدے شوه. د هغهٔ په رسیدو سره حکومت سندهـ د ډاکټر برنس ډیره خاطر تواضع وکړه تردې چې نواب ولي محمد خان د میران سندهـ وزیر اعظم یو پړاؤ مخکښې د هغهٔ استقبال له لاړو او په یو ډیر ښکلي تور اس باندې سور په ډیر شان سره ئ ښار ته رادننه کړو. د ډاکټر برنس په علاج میر مراد علي خان صحت یاب شو او په دې سبب د نورو انګریزانو تګ راتګ هم په سندهـ کښې زیات شو او د هغوي د ملک سیاسي او جغرافیائي حالات ئ نور هم په تفصیل سره معلوم کړل. د دې تعلقاتو نه اوس فیرنګیانو پوره پوره فائده وچتول غوښتل چنانچه په کال 1831ء کښې هغوي یو بل سفارت لاهور ته د سندهـ په لاره د استولو اراده وکړه چې د ملک نور اندرون ته د فیرنګیانو سرې لاړ شي او د ملک د چپې چپې د حال نه واقف شي. لاهور ته د دې سفارت د استولو دپاره دا بهانه جوړه کړې شوه چې ولیم چهارم شاه برطانیه پنځهٔ اسونه مهاراجه رنجیت سنګهـ له په طور د پیشکش راستولي دي. او دا اسونه دې لاهور ته د دریائے سندهـ په لاره واستولے شي. سر جان میلکم ګورنر

بمبۍ لفټيننټ اليګزنډر برنس د دې پيشکشونو د رسولو دپاره منتخب کړو موهن لعل د دې مجوزه سفارت په حقله دا رنګ ليکي.

"The Governer of Bombay selected and recommended Sir Alexander Burns, upon which the supreme Govt. of India nominated him to take charge of those presents and to proceed to the capital of the Punjab. This produced a favourable opportunity to acquire a more familiar and accurate knowledge of the navigable state of the Indus, and of the country extending from its banks, and with this view it was resolved that the horses must be sent up by that river."

ترجمه: "ګورنر بمبۍ سر اليګزنډر برنس د دې کار دپاره منتخب کړو او د هغهٔ سفارش ئې وکړو په دې وجه حکومت هند د دې پيشکشونو د پنجاب صدرمقام ته د رسولو دپاره خوبښ کړو. دې معاملې يوه ښه موقع پيدا کړه چې د دريائے سندهـ ټول صحيح حالات د جهاز رانۍ دپاره معلوم کړې شي. او کومه علاقه چې د دې سيند د غاړې نه شروع شوې ده د هغې حالات هم معلوم شي او هم په دې غرض د دې اسونو د رسولو دپاره د درياب لاره خوښه کړې شوه."

دې اسونو سره يوه بګۍ هم حکومت هند په دې غرض باندې مهاراجه رنجيت سنګهـ ته د پيش کولو دپاره تياره کړه چې کهٔ چرې ميران سندهـ دا اعتراض وکړو چې اسونه دې د خشکې په لاره لاهور ته ورسولے شي نو حکومت هند به ورته دا بهانه جوړه کړي چې کهٔ چرې بګۍ د اوچې په لاره تر لاهوره پورې راښکلے شي نو د سړکونو د خرابوالي په وجه به هغه تر لاهوره ماته شي. موهن لعل په دې سلسله کښې وائي چې:

"زهٔ د خپل کتاب لوستونکي د دې مضمون په حقله په خپلو خيالاتو باندې نهٔ ستړي کوم خو د دې واقعاتو نه دا پوره ثابتيږي چې کوم شکونه او ويرې چې د ميران سندهـ په زړونو کښې د فيرنګيانو افسرانو د هغوي په علاقه کښې د راتلو په متعلق موجود وے هغه بې وجې نهٔ وے. ځکه چې څهٔ وخت هغوي د سندهـ د علاقې په حقله ټول حالات معلوم کړل نو هغوي ئې د خپل ملک نه بالکل محروم کړل د انګريزي حکومت په زړهٔ کښې چې کومې ارادې د سندهـ خودمختار حکومت په حقله وے د ميران سندهـ شکونه د هغو ارادو متعلق بالکل درست وو. په دې سلسله کښې د سر اليګزنډر برنس د تحرير لاندينۍ اقتباسات د دلچسپۍ نه خالي نهٔ دي:

سر جان ميلکم د اګست 1830ء په سرکاري کاغذاتو کښې د ذيل اندراج کړے دے:

"د دريائے سندهـ د جهاز رانۍ سوال د هر پهلو نه ډير اهم دے ولې مونږ سره د دې معاملې په حقله سوائې د ټهټهه او د حيدر آباد په منځکښې کښې د اوياو ميلو ټوټې نه زياتي د نور سيند په بابت څهٔ قابل اعتبار معلومات نشته. د خاکنائے سندهـ د موجوده حالاتو متعلق

مونږ سره صرف د مقامي خلقو د خلې تفصيلات موجود دي او د هغې نه تش دا معلوميږي چې د ټهټهه نه ښکته د اباسيند چرې خپل رخ اکثر د يو ځاے نه بل ځاے ته بدلوي او د دې ټولو چرو شګې مدام د يو ځاے نه بل ځاے ته راخوئيږي. مګر باوجود د دې مشکلاتو نه وړې کشتى مخ په بره د سيند په اصلي چره کښې تلے شي. د حيدراباد نه بره دريائے سندهـ تر ډير لرې پورې بې شک و شبې د دوؤ زرو کلونو نه د زياتې مودې نه د جهازرانى قابل دے." سر اليګزنډر برنس مخکښې وائي :

" علاوه د پيشکشونو د ورکولو او د اظهار دوستى د کار نه ماته خاص طور باندې دا کار سپارلے شوے وۀ چې د دريائے سندهـ متعلق زۀ پوره او مکمل واقعات معلوم کړم. دا څۀ اسان کار نۀ وۀ ځکه چې ميران سندهـ د يورپينو خلقو متعلق ډير شکمن وو او يو سفارت ته هم هغوي د حيدراباد نه په مخکښې د تلو اجازت نۀ وۀ ورکړے. د ميران سندهـ نه علاوه دا مشکله خبره هم وه چې دريائے سندهـ د نورو ډيرو سرکشو او غير مهذبو قبائلو په علاقه کښې بهيدلے وۀ او مونږ سره د هغوي د لاس نه هم د بې‌عزتى او د مخالفت ويره وه. د دې ټولو خبرو متعلق مونږ ته د کچ پوليټيکل ريزيډنټ سر هنري پوټنګر چې د هغۀ نوم ټولې دنيا ته د بلوچستان د سفر د کارنامو په وجه معلوم وۀ ډير ښۀ هدايت راکړل. هغۀ مونږ ته دا تجويز پيش کړو چې د حکومت سندهـ د زړۀ نه به خوف او ويره دا رنګ وځي کۀ چرې دې اسونو سره يوه لويه بګى واستولے شي ځکه چې د هغې لوے والے او درونډوالے به فوراً ميران سندهـ ته دا ثابته کړي چې انګريزي سفارت صرف د اوبو په لاره تلے شي چنانچه حکومت هند دا تجويز فوراً منظور کړو."

"I shall not fatigue the reader by adding observations on this subject which fully shows that suspicion and alarm of the Chiefs of Sindh at the appearance of any British Officer in their country, so evidently come to obtain information concerning it, were not groundless, since they have been deprived of it all at last. The intention which the English Govt. had towards that independant dominion, and the jealousy of the Mirs, which appears now to have been right and just, will be read with much interest from the following quotations from Alexander Burns.

"Sir John Malcolm thus minuted in the records of the Govt. in August 1830: The navigation of the Indus is important in every point of view, yet we have no information that can be depended upon on this subject, except of seventy miles from Tatta to Hyderabad. Of the present state of the Dalta we have native accounts, and the only facts which can be depended are, that the different streams of the river below Tatta often change their channels, and that the sands of all are constantly shifting; but withstanding these difficulties, boats of a small draft of water can always go up the principal of them. With regard to the Indus above Hyderabad, there can be no doubt of its being as it had been for more than two thousand navigable

for up."

"In addition therefore to the complimentry Mission on which I was to be employed, I had my attention most specially directed to the acquisition of full and complete information regarding the Indus. This was a matter of no easy accomplishment, as the Mirs or Rulers of Sindh had ever evinced the utmost jealousy of Europeans and none of the Missions which visited the country had been permitted to proceed beyond their capital of Hyderabad. The river Indus , likewise, in its course to the ocean, traverses the territories of many lawless and barbarous tribes, from whom both opposition ; and insult might he dreaded. On these matters much valuable advice was derived from Lt. Col. Sir Henry Pottinger, political Resid ͻnt in Kachh, and well-known to the world for his adventurous travels in Balochistan. He suggested that it might allay the fears of the Sindh Govt; if a large Carriage were sent with horses, since the size and bulk of it would render it obvious that the Mission could then only proceed by water. This judicious proposal was immediately adopted by Government......"

حکومت هند برنس له د میران سندهـ د شکونو رفع کولو په غرض څهٔ پیشکشونه هغوي ته د ورکولو دپاره حواله کړل. هر کله چې د سفر دپاره انتظامات مکمل شو نو برنس وائي چې ماته په یو خفیه خط کښې د بمبئ د حکومت چیف سیکرټري اخري هدایات راواستول په هغې کښې ماته وئیلي شوي وو چې د دریائے سندهـ د اوبو ژور والے، د بیلو چرو رخ او پلنوالے، په هغوي کښې د جهازونو د تلو راتلو امکان او په غاړه باندې د سوزولو دپاره د لرګو پیدا کیدل او د چارچاپیره ملک د سردارانو او د خلقو مکمل حالات معلومول د حکومت دپاره ډیر سخت ضروري دي. چنانچه ماته ګورنمنټ د سروے او د نقشو دپاره مکمل سامان راکړو. دا مشن په یویشتمه جنوری 1831ء د کچ نه روان شو او په څلیریشتم باندې د کورۍ په خلهٔ کښې چې د سندهـ او د کچ علاقې پوله ده لنګر انداز شو. د دې نه پس هغه مخ په بره روان شو او د میران سندهـ په سرحد کښې وردننه شو. یو ځل خو سندهیانو هغه د خپلې علاقې نه وویستلو مګر بیا میران سندهـ سره د خط و کتابت نه پس هغه د اوبو په لاره سندهـ ته روان شو. چونکې حکومت سندهـ د یورپ د خلقو د چالبازو او فریبونو نه ډیر ویریدل او په دې وجه باندې هغوي په اسانه یو یورپین هم په خپله علاقه کښې نهٔ پریښودلو په دې سبب حکومت هند دا خبره غوره کړه چې مشن دې بغیر د اطلاع ورکولو سندهـ طرف ته روان شي.

برنس وائي چې څهٔ وخت مونږ لنګر واچولو نو ما سمدستي یو خط د میران کاردار ته د اراجي مقام ته واستولو او په هغې کښې ما هغهٔ ته خپله ټوله اراده او کار ښکاره کړو. په دویمه ورځ ډیر په وسله پُر سړي زمونږ د کشتو نه چاپیره شول او وې وئیل چې مونږ د میران سندهـ سپاهیان شو مونږ ته حکم شوے دے چې په کشتو کښې ټول سامان وګورو او هر یو

بکس پرانزو. ما فوراً دا خبره منظوره کړه او تقریباً پنځوس کسه سړي په وسله پُر کشتو ته راوختل او بیل بیل شے ئ ولټولو چې هسې نه چې پکښې توپې او دارو پټ وي. په اخر کښې هغوي ماته ووئیل چې زمونږ په دغه بکس باندې شک راځي چې په کوم کښې بګي پرته ده ولې هر کله چې هغه بکس هم ورته مونږ وښودلو نو هغوي مایوس شول. څهٔ وخت چې هغوي دا تالاشي مکمله کړه او د مشن په اصلي مقصد اومراد باندې بالکل ونهٔ رسیدل نو برنس د دې افسر سره په دې طمع خبرې اترې راواخستې چې شاید د هغهٔ په وسیله زهٔ د حکومت بالا افسرانو سره دوستانه تعلقات قائم کړم مګر هغهٔ برنس ته ووئیل چې د نن ورځې تولـه کارروائي به زهٔ په خپل رپورټ کښې حیدراباد ته وراستوم او تر څو پورې چې د میر نه څهٔ حکم نهٔ وي راغلے نو تاسو به د سیند په خلهٔ کښې هم دغه شان ایسار یئ له دې کبله برنس د سندهـ د علاقې د حد نه راواپس شو او د سیند په خلهٔ کښې ئ لنګر واچولو. هغه وائي چې په لاره باندې مونږ د ډیرو کشتو په خوا کښې تیر شو چې پکښې ډیر مسلح سړي ناست وو هغوي به زمونږ نه په لاره تپوس کولو چې تاسو سره څومره فوځ دے؟ مونږ ورته په جواب کښې ووئیل چې مونږ سره یو ټوپک هم نشته مګر یو بلوچ سپاهي مونږ ته په زوره چغه ووهله چې څهٔ ورانے ستاسو په زړهٔ کښې وهٔ هغه تاسو وکړو زمونږ وطن مو ولیدو مګر مونږ سره څلور زره سړي د جنګ دپاره بالکل تیار دي. بیا ئ مونږ ته ډیر کنځل وکړل اوچې څهٔ وخت مونږ د سیند خلې ته راورسیدو نو هغوي خپل ټوپکونه زمونږ د سرونو دپاسه خلاص کړل هرچند چې ما هغوي سره بحث مباحثه شروع کړه او ورته مې ووې چې زهٔ د یو لوے حکومت نمائنده یم مګر هغوي راته ووئیل چې مونږ ته حکم شوے دے چې تاسو د دې ملک نه وباسو. ما هغوي ته په جواب کښې ووې چې تر څو پورې د میران سندهـ تحریري حکم ماته نهٔ وي راغلے زهٔ به د سندهـ نه واپس نهٔ شم. د یوې ګینټې د انتظار نه پس زما دا یقین وشو چې کهٔ چرې زهٔ نور په دې ځاے کښې پاتې کیږم نو دوئ ما سره جنګ کوي او چونکې زما مطلب دا نهٔ وهٔ چې مشن دې ناکام واپس شي له دې کبله زهٔ د دریائے سندهـ نمرخاتهٔ جئ تـه روان شوم او د هغه ځاے نه مې یو خط حکام سندهـ ته او بل پوټنګر دکچ ریزیډنټ ته ولیږلو. د څهٔ انتظار نه پس ماله د سندهـ د میر د طرف نه یوه ښه د دوستۍ چیټۍ راغله. مګر هغهٔ په هغې کښې ډیر په تفصیل سره د سیند په لاره په کشتو کښې د تلو مشکلات بیان کړي وو. چونکې په دې خط کښې حکومت سندهـ ماته د سیند په لاره د نهٔ تلو صاف حکم نهٔ وهٔ راکړے له دې کبله ما یو ځل بیا د هغوي نه د اوبو په لاره د تلو اجازت دپاره یو خط ولیکلو او په لسمه فروري مونږ بیا د سندهـ علاقې ته روان شو او د دریائے سندهـ د یوې چرې په خلهٔ کښې مو لنګرونه واچول د هغه ځاے نه ما لاندینے خط یو اعتباري سړې له په داراجي کښې د حکومت سندهـ د کاردار په نامه باندې ور کړو:

۱.  د داراجي په مقام کښې دې د سرکاري کاردار ته دا معلوم وي چې دا تحرير د مسټر برنس د طرف نه دے (په هغې د هغهٔ خپل مهر لګيدلے دے او په فارسي ژبه کښې د هغهٔ په خپل لاس ليکلے شوے دے) هغه (يعني برنس) د انګريزانو وکيل دے چې د مير سنده دربار ته او مها راجه رنجيت سنګهـ ته د انګلستان د بادشاه د پيشکشونو د وړلو دپاره مقرر شوے دے.

۲.  يو څو ورځې شوي دي چې زهٔ دريائے سنده ته راغلے يم او تا زما اسباب په دې غرض ولټولو چې تهٔ د هغې رپورټ خپل مالک ته ورکړے او زهٔ راواپس شوم او د جواب منتظر يم.

۳.  ستا چې څومره خوښه وي هغه هومره مسلح سړي راوليږه زما ژوندون ستا په لاس کښې دے مګر دا ياد لره چې هر څوک ماته تکليف راکوي نو مير به ضرور د هغهٔ نه د دې جواب غواړي. دا هم ياد لره چې زهٔ انګريزي افسر يم او يو ټوپک او سپاهي مې هم ځان سره نهٔ دے راوستے لکه چې څرنګ تاته په ښهٔ شان سره معلومه ده او خپل ځان مې د حکومت سنده حفاظت ته سپارلے دے او زما حکومت هم زهٔ هغهٔ ته سپارلے يم.

۴.  زهٔ دا تحرير د خپلو دوؤ نوکرانو په ذريعه دراستوم د هغوي د سلامتي اميد هم زهٔ ستا نه کوم."

د داراجي ايجنټ ماته زما د خط هيڅ جواب را نهٔ کړو کوم سړے چې زمونږ د ورومبي راتلو په وخت کښې په دې عهده مقرر وهٔ هغه په دې وجه موقوف کړے شوے وهٔ چې هغهٔ ولې مونږ بې اجازته په سيند کښې بره تلو ته پريښي وو. زمونږ نوکرانو مونږ له دا خبر هم راوړو چې مونږ له به حکام سنده د هيڅ قسم خوراک يا اوبهٔ نهٔ راکوي بلکې په اوچه باندې به هم مونږ ته د کوزيدو اجازت نهٔ وي له دې کبله مونږ د خوراک څښاک په استعمالولو کښې د سخت کفايت نه کار واخستلو مګر څهٔ وخت چې زمونږ د څښلو اوبهٔ ختم شوې نو ما يوه وړه کشتۍ بره د اوبو راوړلو دپاره واستوله. دا کشتۍ د سنده خلقو ونيوه او سړې ئې ايسار کړل په دويشتمه فروري مونږ سحر وختي واپس کچ طرف ته روان شو او د درې ديرش ګينټو د مسلسل سفر نه پس مونږ منډيوي رود کښې لنګرونه واچول. دې کښې هيڅ شک نشته چې د مير سنده رويه مونږ سره قطعاً ښه نهٔ وه مګر په خپلو خطونو کښې ئې د مخالفت څهٔ خاص اظهار نهٔ وهٔ کړے. هغهٔ په دريائے سنده کښې تر لاهوره پورې په کشتو کښې د تلو مشکلات ډير په زور سره بيان کړي وو او وئيلي ئې وو چې هغې کښې لوے لوے ګټان، بهيدونکے شګې، غولۍ او چړونه دي او د دې نه علاوه ئې ليکلي وو چې تر دې وخته پورې د بنيادم په يادو کښې لاهور ته چا سفر د اوبو په لاره نهٔ دے کړے. دا بالکل ښکاره خبره ده چې دې مشن ته هغهٔ ډير سخت د بد ګمانۍ، د بې اعتبارۍ او د ويرې په

سترګو کتل او دا ئ خیال وۀ چې دا مشن په اصلیت کښې د یو لوے فوځ د راتلو پیش خیمه دے.

اخر د وړد خط و کتابت نه پس د حیدراباد نه زما او د پوټنګر په نوم باندې د دې مضمون خطونه راغلل چې حکومت سندهـ د خشکی په لاره مشن ته د تلو اجازت ورکوي. چونکې دې خط د نورو خبرو اترو یوه نوې لار راوویستله په دې وجه برنس په دویم ځل دریائے سندهـ طرف ته روان شو او په دې اثنا کښې کرنل پوټنګر هم میر ته خط ولیکلو چې دا ممکن نۀ ده چې برنس دې لاهور ته د خشکی په لاره لاړ شي او ورته ئ په دې خط کښې دا ویره هم ورکړه چې د میر سندهـ دا قسم د مخالفت رویه به هیچرې هم بغیر د څۀ قسم کارروایی نه پاتې نۀ شي. ځکه چې مشن د شهنشاه برطانیه عظمیٰ پیشکشونه لاهور ته رسول غواړي.

په لسم مارچ باندې برنس د دریائے سندهـ په طرف خپلې کشتئ روانې کړې او د اوو ورځو د سفر نه پس د دریائے سندهـ د یوې چرې په خلۀ کښې راورسیدل. هغه وائي چې په دې مقام د میر سندهـ یو افسر مونږ له یوه بله چیټئ راکړه چې په هغې کښې هم هغه شان میر موصوف زمونږ د خشکئ په لار په تلو باندې اصرار کړے وۀ. د ډیر خط و کتابت نه پس برنس دا تجویز پیش کړو چې زۀ پخپله په صدرمقام کښې میر سره بحث کول غواړم. څۀ وخت چې برنس د دې تجویز مطابق ټهټهه ته ورسیدو نو د میر د طرف نه دا اجازت نامه راورسیده چې کشتئ دې بیشکه دریائے سندهـ کښې لاړې شي مګر د مشن سړې دې د خشکئ لار واخلي. ولې برنس خپل سامان په کشتو کښې د پریښودو نه بالکل انکار وکړو او اخر د یوې هفتې د نور خط و کتابت نه پس هغۀ د میر سندهـ نه د خپل ځان دپاره د اوبو په لاره د تلو اجازت حاصل کړو.

په اتلسم تاریخ برنس او د هغۀ ټولے حیدراباد ته د دریائے سندهـ په لاره راورسیدو. سمدستي څلور ټولي د میر مراد علي خان او د هغۀ د خاندان د طرف نه هغۀ ته په خیر راتلو دپاره راغلل. او د میر موصوف د طرف نه ئ سلطنت برطانیه سره د دوستئ او د عقیدت اظهار وکړو. برنس وائي چې زمونږ د میلمستیا دپاره خیمې ولګیدے او د هر قسم ساز و سامان مونږ ته راواستولے شو وارۀ او لوے خانان او سیدان، نوکران او چوبداران زمونږ د تپوس او د خاطر تواضع دپاره راغلل. په ماښام کښې نصیر خان مونږ میر سندهـ ته پیش کړو د خبرو اترو په دوران کښې میر برنس ته ووئیل چې د سفر په دوران کښې چې کوم تکلیفونه تاسو ته رسیدلي دي هغه د زړونو نه وباسئ او ما د حکومت برطانیه دوست او اتحادي وګنئ.

د ډیر خاطر مدار نه پس په درویشتم اپریل دا مشن د میر مراد علي خان په شاهي کشتئ کښې مخ په بره روان شو او څۀ وخت چې د کوز سندهـ سرحد ته ورسیدل نو د خیرپور میر

رستم خان د طرف نه محمد گوهر یو بلوچي سردار چې میر رستم راستولے وۀ د مشن استقبال وکړو. محمد گوهر ډیر ګډان او میوه، مصالحه، کُچ، غوړي، تماکو ، افیم وغیره د مشن د میلمستیا دپاره راوړل او ټول ئ د مشن سرو ته ورکړل. د میر رستم خان د مهربانئ په بدل کښې برنس د شکریې یو فارسي خط هغۀ ته ولیکلو چونکې دا خط د دلچپسی نه خالي نۀ دے. مونږ د سر الیګزنډر برنس په خپلو الفاظو کښې دا ترجمه لوستونکو ته پیش کوؤ :

" (After compliments) I hasten to inform your Highness that I have reached the Frontier of your country in company with the respectable Sayyed Taqqi Shah, who has accompanied me on the part of Mir Murad Ali Khan from Hyderabad. As I had long since heard of Your Highness from those who pass between Kachh and Sindh, it forms a source of congratulation to me in safety the presents which have been graciously bestowed on Maharaja Ranjeet Singh, by His Majesty the King of England- Mighty in Rank; terrible as the planet mars; a Monarch Great and Magnificient; of the rank of Jamshed, of the dignity of Alaxander; unequaled by Darius; just as Nausherawan; great as Faridoon; admired as Syrus; famed as the Sun; the destroyer of tryanny and oppression upright and generous; Pious and devout, favoured from above, etc, etc. May his dominion endure for ever.

It is well known that when a friend comes to the country of a friend it is a source of much happiness, and I have therefore written these few lines; but when I have the pleasure of seeing you, my joy will be increased.

I had written thus far when the respectable Mohammad Gauhar, one of those enjoying Your Highness confidence arrived at this place to acquaint me with professions of respect and friendship for the British Government, bringing with him many thanks of Your hospitality. Need I say I am rejoiced? Such civility mark the Great."

ترجمه : "( پس د سلامونو نه ) زۀ په شتاب آنجناب ته دا اطلاع ورکوم چې زۀ سره د معزز سید تقي شاه چې هغه ما سره میر مراد علي خان د طرف نه د حیدراباد نه راغلے دے ستا د حکومت سرحد ته راورسیدم. چونکې د ډیرې زمانې نه ما د آنجناب متعلق څۀ خبرې د بعضې خلقو نه اوریدلے وے چې څوک د کچ او د سندھ د علاقو په منځکښې ځي راځي. له دې کبله دا زما دپاره د مبارکباد باعث دے چې زۀ ستا مملکت ته راورسیدم او په حفاظت مې هلته پیشکشونه ځان سره راورسول چې کوم مها راجه رنجیت سنګھ باندې ملکۀ معظمه شاه انګلستان عنایت کړي دي. چې هغه په درجه کښې بلند دے د مریخ ستوري په شان زورور دے عظیم الشان او د جاه و جلال خاوند بادشاه دے. د جمشید درجه او د سکندر دبدبه لري او دارا ورسره همسري نۀ شي کولے د نوشیروان په شان عادل، د فریدون په شان لوے، د ثریا په شان ستائیلے، د نمر په شان ښکاره، د ظلم ورکونکے، رښتونے او فیاض، متقي او

پرهیزګار، د خدایے د طرف نه لحاظ دار وغیره وغیره خلده الله ملکه وغیره وغیره.

ذا ښکاره خبره ده چې هر کله یو دوست د بل دوست ملک ته ورشي نو دا د هغوي د لويې خوش قسمتۍ باعث وي او له دې کبله ما دا یو څو کرښې ليکلي دي ولې هر کله چې ماته ستاسو د ملاقات خوشحالي نصيب شوه نو بيا به زما خوشحالي ډيره زياته شي. ما تر دې پورې دا خط ليکلے وۀ چې معزز محمد ګوهر چې د آنجناب يو اعتباري دے ماله دې ځاے ته راورسيدو چې ما حکومت برطانيه سره ستا د عقيدت او د دوستۍ د جذباتو نه واقف کړې. هغۀ ځان سره ستا دِ ميلمستيا ډير څيزونه هم راوړي وو چې ماته پرې خوشحالي حاصله شوه دا مهرباني هم تا غوندې لويو خلقو سره ښائي."

برنس وائي چې مونږ به اکثر شرفاؤ سره آمدورفت او ګفتګو کوله په خبرو اترو کښې به هغوي اکثر لاهور ته د مشن د تللو د اصلي غرض تپوسونه کول. د هغوي زمونږ په ايمانداری بالکل اعتبار نۀ کيدلو چې ګڼې مونږ صرف د پيشکشونو د رسولو دپاره د دريائے سندهـ په لاره چې د نوح عليه السلام د وختو نه په هغې باندې څوک نۀ وو تلي په دغه لاره تلل خوبښ کړي دي.

په څوارلسم مئ سحر مشن علي پور نومے کلي سره د کشتو نه کوز شو او د مير رستم خان وزير چې د خيرپور نه راغلے وۀ د هغوي استقبال وکړو. برنس وائي چې زمونږ استقبال په ډيرې مهربانۍ او خوش خلقۍ سره وشو. وزير مونږ ته ووئيل چې مير رستم خان ستاسو په راتلو ډير خوشحاله شوے دے ځکه چې د ډيرې مودې نه د هغۀ سلطنت انګريزي ته د زياتي نزدې کيدو شوق وۀ مګر د بدقسمتۍ نه د هغوي يو افسر سره هم لا د هغۀ ملاقات نۀ وۀ شوے. هغۀ ووئيل چې مير رستم خان دومره لوے او طاقتور قوم سره د برابرۍ کوشش نۀ کوي مګر دا اميد کوي چې انګريزان به هغه خپلو خيرخواهانو کښې وشماري او هر وخت به هغۀ ته د خدمت کولو دپاره وينا کوي. ما د هز هائي نس د ډير خاطر تواضع او د ميلمستيا شکريه ادا کړه.

تر کومې پورې چې مشن خيرپور کښې وۀ نو هره ورځ به هغوي له اتۀ يا لس ګډان او د هر قسم د خوراک سامان د يو نيم سلو تنو دپاره د مير خيرپور د طرف نه راتلو او علاوه د دې نه به دوه وخته پخکړے خوراک په دوه اويا رکيبو کښې هغوي له رالیږے شو. دا اندراجات مونږ د موهن لعل د کتاب " دي لائف آف دوست محمد خان" نه اخستي دي او هغۀ د برنس د خپل کتاب نه د دې سفر حالات بيان کړي دي. هم په دې سلسله کښې هغۀ دا رنګ ليکلي دي :

"The preceding contents which I have quoted will show how we were desirous to enter in Sindh to obtain Political, Geographical and Commercial information, and how the Mirs were flattered Civil and hospitable and what

extraordinary forbaerance was exhibited by our authorities, to allay their suspicions, which appear now to be just."

ترجمه : "مذکوره بالا اقتباسات چې مونږ درج کړي دي د هغې نه سرے اندازه لګولے شي چې انګريزان په سندهـ کښې د سياسي جغرافيائي او تجارتي حالاتو د معلومولو دپاره هر څومره ډير خواهشمند وو او د ميران سندهـ څومره خوشامنده به کيده. او هغوي څرنګ په مهمان نوازۍ او په خوش خلقۍ فيرنګيانو سره پيش راتلل او بيا انګريزانو په غير معمولي تحمل او صبر سره د هغوي د بدګمانۍ د لرې کولو کوشش کولو حالانکې اوس د هغوي دا بدګماني بالکل جائزې ثابتې شوے."

په نولسم مئ برنس مير رستم خان نه رخصت شو. په دې مقام مونږ بيا د برنس خپل الفاظ د لوستونکو د فائدې دپاره په دې غرض ليکو چې هغوي ته دا معلومه شي چې ميران سندهـ په څۀ څۀ طريقو باندې د انګريزانو خوشامندې کولے او د هغوي د دوستۍ د حاصلولو کوشش ئې کولو. مګر فيرنګيانو په چل او په بهانه د لرې مودې نه پس د تجارتي او د دوستۍ د عهدنامو په جامه کښې د هغوي نه ټول ملک لاندې کړو. برنس په خپل کتاب کښې دا رنګ ليکي :

"On the banks of Indus we had a curious interview in the evening after our arrival with the Wazir from Khairpur, who had been sent by Mir Rustam Khan to escort us thus far, and see that we were furnished with boats.

After requesting to be received privately, he rendered the subject of our first conversation, and said that he had been instructed by his master to propose a solemn treaty of friendship with the British Government on any terms that might he named. He then ran over the list of neighbouring States which owed their existance to an alliance- the chiefs of the Daudpotras, the Rawal of Jaisalmir and the Raja of Bikaneer, etc etc- and then concluded with a peroration full of gravity, that it was foretold by astronomers and recorded in his books that the English would in time possess all India, a prediction which both Mir Rustam and himself felt satisfied would come to pass, when the British would ask why the chiefs of Khairpur had not come forward with an offer of allegiance. I tried to remove, but without effect, the sad prognostication of the Minister, and declared my incompetency to enter as such weighty matters as a treaty between the states, without authority and before receiving a written statement under the Mir's Seal I said that I would make known the wishes that had been expressed to my Government, which would be gratified to hear that they had such friends, which seemed to please the diplomatist; he begged that I would bear in mind what had passed and enacted a promise that I would write to him when gone, and so water the tree of friendship, that the object might be ultimately effected, for the stars and heaven proclaimed the fortune of the English."

ترجمه : "په کومه ورځ چې مونږ راورسيدو نو د هغې په ماښام زمونږ او د خيرپور د وزير په

منځکښې د دریائے سندھ په غاړه یو دلچسپ ملاقات وشو. میر رستم خان دا خپل وزیر د دې دپاره راستولے وۀ چې هغه مونږ تر دې ځایه پورې راولي او ګوري چې مونږ له کشتۍ په لاس راشي. هغۀ ماته یواځې د خبرو کولو سوال وکړو او کومې خبرې چې هغۀ په وړومبي ملاقات کښې ما سره شروع کړے وے هغه ئې بیا سر دوباره راواخستې. او وې وئیل چې ماته خپل بادار هدایات راکړي دي چې زۀ دې حکومت برطانیه سره د دوستۍ د یو باقاعده عهدنامې تجویز پیش کړم او کوم شرطونه چې د برطانیه د حکومت خوښ وي هغه دې پکښې درج کړي. بیا هغۀ د خواو شا ریاستونو نومونه واخستل او وې وئیل چې دا ریاستونه څکه نن وخت موجود دي چې د هغوي تاسو سره اتحاد وۀ مثلاً د داهودپوترا چیف د جیسلمیر راول راجه بیکنیر وغیره وغیره. او بیا ئې اخر کښې په ډیرې سنجیدګۍ تقریر وکړو چې نجومیانو پیش ګوئي کړې ده او زمونږ په کتابونو کښې درج ده چې فیرنګیان به په یوه زمانه کښې په ټول هندوستان باندې قبضه کوي. او په دې پیش ګویۍ باندې زما او د میر رستم خان دواړو یقین دے. نو په هغه وخت به بیا انګریزان تپوس کوي چې د خیرپور چیف ولې د عقیدت اظهار نۀ وۀ کړے. ما هسې عبث کوشش وکړو چې د هغۀ د زړۀ نه د دې افسوسناکې پیش ګویۍ اثر لرې کړم او ورته مې ووې چې زۀ بغیر د اجازت نه داسې لوے کار لکه د دوؤ حکومتونو په منځکښې د عهدنامې کولو اختیار نۀ لرم. تر څو پورې چې د میر د مهر لاندې د هغۀ یو تحریر ما سره نۀ وي. نو بیا به زۀ د میر دا خواهش خپل حکومت ته ښکاره کړم او هغوي به په دې خبره ډیر خوشحاله شي چې زمونږ دا قسم دوستان شته.

دا خبره په وزیر ښه ولګیده او راته ئې ووې چې زمونږ دا خبرې د زړۀ نه وۀ باسے او ماته ئې وعده واخسته چې څۀ وخت زۀ د دې ځاے نه فارغ شم نو زۀ به هغۀ ته چیټۍ لیکم او دغه شان به د دوستۍ بوټي ته اوبۀ ورکوم چې اخر کار زمونږ مدعا پوره شي څکه چې ستوري او فلک دواړه د انګریزانو د نیک نصیب اعلان کوي."

اګر چې د کمپنی د ډیرې زمانې نه حکومت هند سره تجارتي آمدورفت قائم وۀ مګر کال 1809ء پورې د دوستۍ عهدنامه د دوئ په منځکښې نۀ وه شوې. کومې کومې عهدنامې چې د دې نه پس د دواړو حکومتونو ترمنځه وشوې د هغې شرطونه مونږ درج کوؤ. هم د دې عهدنامو په ذریعه د فیرنګیانو پښې په دې خودمختاره علاقه کښې ولګیدے او ډیر په ارام او بې ډزه ډوزه د فیرنګیانو د فوځونو د راتلو دپاره یوه لار پرانستې شوه حالانکې د شلم اپریل 1832ء د عهدنامې د دریم شرط د اول او دویم جزو مطابق انګریزانو دا اقرار کړے وۀ چې ملک سندھ کښې به انګریزان د هیڅ قسم وسله یا فوځې ساز و سامان نۀ جمع کوي. د ټولو نه وړومبۍ عهدنامه چې کومه په یویشتم اګست 1809ء کښې د فیرنګیانو او د میران سندھ په منځکښې شوې وه هغه دا ده :

"Article 1. There shall be eternal friendship between the British Government and that of Sindh, namely Mir Ghulam Ali, Mir Karam Ali, and Mir Morad Ali.
Article 2. Enmity shall never appear between the two States.
Article 3. The mutual dispatch of the Vakils of both Governments, namely the British Government and Sindhian Govt., shall ever continue.
Article 4. The Govt. of Sindh will not allow the establishment of the tribe of the French in Sindh."

Written on the 10th of the month of Rajabul-Murajjab, in the Year of Hijri 1224 corresponding with the 21st August 1809.

ترجمه :" دفعه نمبر ۱ : د حکومت برطانیه او حکومت سندهـ یعنې میر غلام علي ، میر کرم علي او میر مراد علي ترمنځه به دوامي دوستي وي.
دفعه ۲ : د دواړو حکومتونو په منځکښې به هیڅکله دشمني نۀ پیدا کیږي.
دفعه ۳ : دواړه حکومتونه یعنې حکومت برطانیه او حکومت سندهـ به خپل خپل وکیلان یو بل له همیش استوي.
دفعه ۴ : حکومت سندهـ به د فرانسیسي قبیلې د ابادیدو اجازت نۀ ورکوي.
تحریر شد ۱۰ ماه رجب المرجب ۱۲۲۴ هجري مطابق 21 اګست 1809ء
دویمه عهدنامه چې کومه ایسټ انډیا کمپنی او د میران سندهـ ترمنځه په نومبر 1820ء کښې شوې وه هغه دا ده :

"The British Govt. and the Govt. of Sindh having in view to guard against the occurrence of Frontier disputes and to strengthen the friendship already subsisting between the two states, Mir Ismail Shah was invested with full power to treat with the Honourable the Governor of Bombay, and the following Articles agreed on between the two parties.

Art. 1. There shall be perpetual friendship between the British Govt. on the one hand and Mir Karam Ali and Mir Morad Ali on the other.

Art. 2. Mutual intercourse by means of vakils shall always continue between the two Govts.

Art. 3. The Mirs of Sindh engage not to permit any European to settle in their Dominions. If any of the subjects of either of the two States should establish their residence in the Dominions of the other, and should conduct themselves in an orderly and peacable manner in the territoy to which they may emigrate they will be allowed to remain in that situation, but if such fugitives shall be guilty of any disturbance or commotion, it will be incumbent on the local authority to take the offenders into custody, and punish or compel them to quit the country.

Art. 4. The Mirs of Sindh engage to restain the depredations of the Khosas and all other tribes and individuals within their limits and to prevent the occurrence of any inroad into the British dominion.

Bombay 9th Nov. 1820.

Note:-- The foregoing treaty was approved of by the Supreme Govt. on the 10th of February 1821.

ترجمه : "چونکې د حکومت برطانیه او د حکومت سندهـ دا مدعا ده چې د هغوي ترمنځه دې په سرحد باندې تنازعات پیدا نهٔ شي بلکې د دوستۍ کوم تعلقات چې د هغوي ترمنځه موجود دي هغه دې نور هم مضبوط شي د دې دپاره میر اسماعیل له پوره اختیارات ورکړے شول چې هغه آنریبل گورنر بمبۍ سره د عهدنامې خبرې اترې وکړي چنانچه د فریقینو ترمنځه لاندیني شرطونه طے شول :

دفعه ۱ : یو خوا د حکومت برطانیه او بل خوا د میر کرم علي او د میر مراد علي ترمنځه به دوامي دوستي وي.

دفعه ۲ : د دواړو حکومتونو ترمنځه به د وکیلانو په وساطت باقاعده باهمي آمدورفت جاري وي.

دفعه ۳: میران سندهـ دا اقرار کوي چې هغوي به هیڅ یورپین سړے په خپل حکومت کښې ابادیدو ته نهٔ پریږدي کهٔ چرې په دې دواړو حکومتونو کښې د یو حکومت رعیت د بل حکومت په علاقه کښې استوګنه اختیار کړه نو تر کومه پورې چې هغه په هغه علاقه کښې د امن او د صلح ژوندون تیروي نو هغه به په خپل حال پریښودے شي ولې کهٔ چرې هغه د څهٔ بدامنۍ یا شورش مرتکب شي نو د مقامي افسرانو به دا فرض وي چې هغه گرفتار کړي یا ورله سزا ورکړي او یا ئې د ملک نه وشړي.

دفعه ۴ : میران سندهـ اقرار کوي چې مونږ به د خپل حکومت کهوسه گان او د نورو قبیلو سړي د چپاوونو کولو نه او په حکومت برطانیه کښې د داړو اچولو نه منع کوؤ.

په مقام د بمبۍ 9 نومبر 1820ء

نوټ : برنۍ عهدنامه حکومت اعلیٰ په لسمه فرورۍ 1821ء منظوره کړه.

دریمه عهدنامه چې د ایسټ انډیا کمپنۍ او د خیرپور حکومت په منځکښې په شپږم اپریل 1832ء کښې وشوه هغه لاندې درج کوؤ :

Art. 1. There shall be eternal friendship between the two States.

Art. 2. The two contracting powers mutually bind themselves from generation to generation never to look with the eye of covetousness on the possessions of each other.

Art. 3. The British Govt. having requested the use of the river Indus, in the roads of Sindh for the merchants of the Hindustan etc., the Govt. of Khairpur agrees to grant the same within its own boundaries on whatever terms may be settled with the Govt. of Hyderabad, namely, Mir Murad Ali Talpur.

Art. 4. The Govt. of Khairpur agrees to furnish a written statement of just and reasonable duties to be levied on all goods passing under this treaty, and further

promises that traders shall suffer no loss or hindrance in transacting their business.

Dated the 2nd of ziqad, 1247 Hijri, corresponding with the 4th day of April A.D 1832."

ترجمه :

"دفعه ۱ : د دوارو حکومتونو تر منځه به دائمي دوستي وي.

دفعه ۲ : د دې عهدنامې دواړه اقرار کونکي پشت په پشت دا لوظ کوي چې هيڅوک به د يو بل مقبوضاتو ته د لالچ په نظر نهٔ ګوري.

دفعه ۳ : چونکې حکومت برطانيه په دريائے سندهـ کښې د هندوستان د سوداګرانو وغيرۇ د تګ راتګ دپاره لار غوښتې وه په دې وجه حکومت خيرپور په خپل حد کښې دا اجازت هغوي له هم په هغه شرطونو باندې ورکوي چې کوم حکومت حيدراباد يعنې مير مراد علي خان تالپوري سره طے شي.

دفعه ۴ : حکومت خيرپور د يو داسې فهرست تيارولو لوظ کوي چې په هغې کښې به معقول اومنصفانه شرح محصول په هغه اسباب درج وي چې کوم د دې عهدنامې د لاندې د هغهٔ په علاقه کښې تيريږي او د دې نه علاوه دا اقرار کوي چې هيڅ تاجر به په خپل لين دين کښې د هغهٔ په علاقه کښې څهٔ نقصان نهٔ مومي.

مؤرخه ۲ ذيقعده ۱۲۴۷ هجري مطابق 4 اپريل 1832ء

د دې نه پس کومه عهدنامه چې د ايسټ انډيا کمپنۍ او د مير مراد علي خان والئ حيدراباد سندهـ په منځکښې په شلم اپريل 1832ء کښې وشوه هغه هم لاندې درج کوؤ :

"1. That the friendship provided for in former treaties between the British Govt. and that of Sindh remain unimpaired and binding and that this stipulation has reseived additional efficacy through the medium of Lieut. Col. Pottinger, Envoy, etc., so that the fine connection and close alliance now formed between the said States shall descend to the children and successors of Mir Murad Ali Khan, principal after principal from generation to generation.

Art. 2. That the two contracting powers bind themselves never to look with an eye of covetousness on the possessions of each other.

Art. - 3. That the British Govt. has requested a passage for the merchants and traders of Hindustan by the river and roads of Sindh by which they may transport their goods and merchandese from one country to another,and the said Govt; of Hyderabad hereby acquiesces in the same request, the three following conditions:-

(1) That no person shall bring any description of military stores by the above river or roads.

(2) That no armed vessels or boats shall come by the said river.

(3) That no English merchants shall be allowed to settle in Sindh, but shall

come as occasion requires, and having stopped to transact their business, shall return to India.

Art. 4. When merchants shall determine on visiting Sindh, they shall obtain a passport to do so from the British Govt; and due information of the granting of such passports shall be made to the said Govt; of Hyderabad by the said Resident in Kachh or other officer of the said British Govt.

Art. 5. That the Govt; of Hyderabad having fined on certain proper and moderate duties to be levied on merchandise and goods proceeding by aforesaid routes, shall adhere to that scale, and not arbitrarily and despotically either increase or lesson the same, so that the affairs of merchants and traders may be carried on without stop, or interruption, and the custom house officers and farmers of revenue of the Sindh Govt; are to be specially directed to see that they do not delay the said merchants on pretence of awaiting for fresh orders from the Govt; or in the collection of the duties; and the said Govt; is to promulgate a tariff or table of duties leviable on each kind of goods, as the case may be.

Art. 6. That whatever portions of former treaties entered into between the two States have been altered and modified by the present one remain firm, and unaltered, as well as those stipulations now concluded, and, by the blessing of God, no deviation from them shall ever take place.

Art. 7. That the friendly intercourse between the two States shall be kept up by the dispatch of vakils, whenever the transaction of business of the increase of the relations of friendship may render it desirable.

Written on the 18th Ziqad, 1247 Hijri, coresponding with the 20th April 1832.

ترجمه:

"دفعه ۱ : کومې عهدنامې چې د حکومت برطانیه او د سنده په منځکښې د دې نه ورومبی شوي دي په هغوي کښې د دوستی کوم شرطونه چې درج دي هغه به بدستور واجب العمل گڼلے شي او د دوستی دا شرط د لفټيننټ کرنل پوټنګر سفير په راتلو نور هم پوخ شوے دے. تر دې پورې چې کوم پاخۀ تعلقات او نزدې خپلوي اوس د دې دواړو حکومتونو په منځکښې جوړه شوې ده دا به د مير مراد علي خان اولاد او جانشينان پشت په پشت هر يو مشر سره جاري وي.

دفعه ۲ : د دې عهدنامې دواړه مقران اقرار کوي چې يو به هم د بل مقبوضاتو ته د لالچ په نظر نۀ ګوري.

دفعه ۳ : حکومت برطانيه د هندوستان د سوداګرانو او د تاجرانو دپاره د سنده په لاره او درياب کښې د يو ملک نه بل ته د سوداګرۍ د مال وړلو دپاره لار غوښتې ده د حيدر اباد حکومت دا درخواست په مفصله ذيل دريو شرطونو منظوروي :

(۱) هيڅوک به هيڅ قسم فوځي سامان په دې لارو باندې نۀ راوړي.

(ب) هیڅ مسلح جهاز یا کشتي به په دریاب کښې نۀ راځي.
(ج) هیڅ انګریزي سوداګر ته به د سندھ په علاقه کښې د ابادیدلو اجازت نۀ وي بلکې څۀ وخت چې ضرورت وي نو هغه راتلے شي او د خپلو کارونو د ختمولو نه پس به هندوستان ته واپس کیږي.

دفعه ۴ : هر یو سوداګر چې د سندھ علاقې ته راتلل غواړي نو هغه به یو راهداري د حکومت سندھ نه اخلي او د دې راهداری اطلاع به د کچ ریزیډنټ یا د حکومت برطانیه څوک بل افسر باقاعده حکومت حیدر اباد ته ورکوي.

دفعه ۵ : د حیدر اباد حکومت به د سوداګری په هغه مال چې په دې لارو تیریږي د محصول یو مناسب او معقول شرح مقرروي او بیا به په هغه شرح باندې قائم وي او بیا به ئې هیڅ بې هیڅه تنش په خپل اختیار نۀ زیاتوي او نۀ کموي. چې د سوداګرانو او د تاجرانو په تجارت کښې څۀ رکاوټ نۀ پیدا کیږي او د محصول افسرانو او د حکومت سندھ د محصول ټیکه دارانو ته دې دا خاص هدایات واستولے شي چې هغوي دې، دې سوداګرانو له په دې بهانه ایسارتیا نۀ ورکوي چې مونږ د حکومت د طرف نه د نورو هدایاتو په انتظار کښې یو او نۀ دې هغوي ته د محصول په وصولی کښې ایسارتیا ورکولے شي. د حکومت د طرف نه پکار دي چې په هر یو قسم مال باندې د جدا جدا محصول یو نرخنامه شائع کړي.

دفعه ۶ : د فریقینو په منځکښې چې کومې عهدنامې وړومبی شوي دي په هغې کښې کومې کومې حصې چې په دې عهدنامه کښې ترمیم یا بدلې شوے نۀ دي هغه به بنۀ د عمل قابل ګڼلے شي او هغه شرطونه به هم واجب العمل وي چې کوم اوس طے شول او د خدائے په فضل به د هغې نه هیڅکله څوک نۀ جاروځي.

دفعه ۷ : د دې دواړو حکومتونو په منځکښې د دوستی د تعلقاتو د قائم ساتلو دپاره به هر یو حکومت بل له خپل وکیل په هغه موقع استوي چې څۀ وخت په هغې کښې څۀ معامله د فیصلې دپاره پیښه شي او یا د دوستی تعلقات نور هم مستحکم کیدل مناسب وي.

نوشته شد ۱۸ ذیقعد ۱۲۴۷ هجري مطابق 20 اپریل 1832ء

د دې نه پس په دویشتم اپریل 1832ء او په درویشتم دسمبر 1832ء کښې دوه نوې اقرار نامې د شرط نمبر پنځم د تفصیل په حقله د محصول د نرخ بابت کښې وشوې په دې هم فیصله وشوه چې د سندھ حکومت به انګریزانو او د جودهپور حکومتونو سره د ډاکه مارو په سرزنش کښې امداد کوي.

د دې نه پس یوه بله عهدنامه هم د میران سندھ میر نور محمد خان او د میر ناصر خان او د ایسټ انډیا کمپنی په منځکښې په شلم اپریل 1838ء کښې شوې وه مګر د هغې نقل زمونږ تاریخي غرض دپاره غیر ضروري دے.

اوس مونږ د میران سندھ او د انګریزي حکومت هند په منځکښې اخري عهدنامې ته چې کومه په پنځویشتم دسمبر 1838ء کښې وشوه راځو. وړومبې ذکر شوې دې چې سر هنري پوټنګر میران حیدراباد له او سر الیګزنډر برنس میران خیرپور له د جارحانه او مدافعانه عهدنامو د کولو دپاره انګریزي حکومت هند په افغانستان حمله کونکي فوځ د روانیدو نه قبل استولي وو. سر الیګزنډر برنس ډیره موده رستم خان میر خیرپور سره د دې مجوزه عهدنامو متعلق خبرې اترې وکړې مګر کوم شرطونه چې برنس هغهٔ ته پیش کول په هغې باندې میر رستم خان دستخط کولو ته تیار نهٔ وهٔ . میر مبارک او میر مراد هم د دې شرطونو بالکل خلاف وو. په دې سبب د څهٔ مودې د انتظار نه پس برنس د خیرپور نه بغیر د خپل مقصد د حاصلولو نه واپس شو او د خپل خفګان د اظهار نه پس دې شکارپور ته راغے.
چې برنس رخصت شو نو میر علي مراد هم د ډیجي نومے یوې خپلې قلا ته لاړو څهٔ ورځې چې تیرې شوې نو د میر رستم خان په زړهٔ کښې ویره پیدا شوه او دا خیال ئ وکړو کهٔ چرې فیرنګیان زما نه ناراضه شول نو چونکې په افغانستان انګریزي حمله کونکے فوځ د فیروز پور نه راروان شوے دے نو زما نه به ملک هغوي په زور واخلي او د وطن نه به مې وشړي. انګریزان هم د هغهٔ په دې خیالاتو واقف وو. نو برنس د هغهٔ د دې کمزورۍ نه دا شان ناجائزه فائده وچته کړه چې د میر رستم خان نه ئ د هغهٔ وزیر فتح محمد غوري خپل کیمپ شکارپور ته راوبللو او موهن لعل خپل میر منشي ئ میر رستم خان سره خیرپور ته په دې غرض واستولو چې د فتح محمد غوري او د میر علي مراد په غیر موجودګۍ کښې به موهن لعل د میر رستم خان نه په هر شان چې وي په دې عهدنامه باندې دستخط واخلي.
څهٔ وخت چې فتح محمد غوري شکارپور ته چې په یوه لاره روان شو نو موهن لعل په بله لار باندې خیرپور ته ورسیدو. میر رستم خان یو ډیر نیک دله ولې یو کمزور طبیعته شریف زاده وهٔ هغه د موهن لعل ډیر خاطر تواضع وکړه او د هغهٔ د معمولي ترغیب نه پس هغهٔ په عهد نامه دستخط کولو ته تیار شو خو شرط ئ دا پیش کړو چې سر الیګزنډر دې پخپله ماته دا عهدنامه پیش کړي. موهن لعل ته د سر الیګزنډر برنس راتلل منظور نهٔ وو ځکه چې کهٔ چرې هغه د شکارپور نه خیرپور ته راغلے وے نو فتح محمد غوري به هم هغهٔ سره راغلے وهٔ او بیا به هغهٔ میر رستم خان د دې عهدنامې د شرطونو په ماهیت په ښهٔ شان سره پوهه کړے وهٔ او عهدنامه به شوے نهٔ وه. له د ې کبله موهن لعل برنس ته یوه پټه چیټۍ ولیکله چې تهٔ د میر رستم خان د خط په جواب کښې هغهٔ ته دا ولیکه چې هر کله موهن لعل په عهدنامه باندې ستا د منظورۍ دستخط حاصل کړي او د خیرپور نه واپس راشي نو زهٔ به پخپله د شکارپور نه درشم او د دې عهدنامې په کامیابۍ سره د کیدو مبارکباد به درکړم. ځکه چې په دې باندې به زمونږ د دوستۍ تعلقات نور هم مضبوط شي.

څهٔ وخت چې د برنس دا چیتهي خیرپور ته راورسیده نو سمدستي د میر علي مراد نوکر هم د ډیجي نه راغے او میر رستم خان ته ئ سوال جواب وکړو چې میر علي مراد سبا له راتلونکے دے او هغه وائي چې تهٔ موهن لعل سره چې تر څو پورې زهٔ نهٔ یم دررسیدلے مهٔ ګوره د موهن لعل مخبرانو هغهٔ ته د شپې د دې واقعې اطلاع ورکړه او هغهٔ ټوله شپه په ډیر فکر تیره کړه سحر لا رڼا شوې نهٔ وه چې موهن لعل د میر رستم خان خواب ګاه ته ورغے او سوال جواب ئ ورته وکړو چې زما تا سره ډیر ضروري کار دے . او فوراً درسره ملاقات کول غوارم. دا نیک نیته او ساده میر هم د شپې په جامو کښې هغهٔ له راووتلو او د موهن لعل نه ئ د هغهٔ د راتلو د غرض تپوس وکړو موهن لعل د عهدنامې قاعده د هغهٔ په مخکښې کښېښنوده. او ورته ئ ووئیل چې په دې دستخط وکړه موهن لعل قلم دوات څان سره وړي وو او د هغهٔ مطلب دا وهٔ چې د علي مراد د رارسیدو نه وړومبے زهٔ د میر رستم خان نه دستخط واخلم. څهٔ وخت چې دا خبرې د دې دواړو په منځکښې کیدے نو د میر رستم خان بعضې نوکرانو په بلوچي ژبه کښې هغهٔ ته ووئیل چې ښه به دا وي چې تهٔ د علي مراد د راتلو انتظار وکړې. مګر موهن لعل هغهٔ له قلم په لاس کښې ورکړو او ورته ئ ووئیل چې لا په دې دستخط وکړه او لا دا ووایه چې زما فیرنګیانو سره دوستي او خپلوي پکار نهٔ ده. موهن لعل په هغهٔ باندې په شیرینو او په خوږو الفاظو کښې دوړه دپکه هم وکړه. په دې خبرو میر رستم خان دستخط کولو ته بالکل تیار شو. چې په دې وخت کښې علي مراد راورسیدو او هغه ئ د مهر لګولو نه منع کړو موهن لعل هغهٔ ته نوره هم خلهٔ پسته کړه او ورته ئ ووئیل چې اګر چې علي مراد ستا ورور دے مګر ستا خیرخواه نهٔ دے او څهٔ وخت چې انګریزي فوځونه سبزالکوټ ته راورسیږي او نو هر یو به د خپل څان د خیر لټولو دپاره زمونږ دا ټول موجوده شرطونو منظورولو ته تیار شي. ولې هغه وخت به د میر رستم خان د دوستۍ څهٔ احسان په فیرنګیانو پاتې نهٔ شي.

"موهن لعل وائي چې " هغهٔ بیا زما لاس د ډیرې مینې نه راونیوو او راته ئ ووئیل چې زهٔ په دې پوهه یم چې تهٔ فیرنګے نهٔ ئ او په دې هم پوهه یم چې تهٔ د ملک سندهـ ډیر خیرخواه ئ نو تهٔ ماته صاف ووایه چې کهٔ چرې زهٔ دا عهدنامه منظوره کړم نو په دې به واقعي زما او د انګریزانو تعلقات او دوستي زیاته شي او ګورنر جنرل او بادشاه انګلستان به واقعه کښې په دې خوشحاله شي او کهٔ نه څهٔ وخت چې هغوي خپله مدعا او مطلب حاصل کړي نو ما به بیا د څان نه وشړي او لرې به مې کړي."

موهن لعل مخکښې وائي چې " ما هغهٔ له دلاسه ورکړه او ما د سر الیګزنډر برنس او خپل قول او اقرار د ګورنمنټ د طرف نه هغهٔ سره وکړو او ورته مې ووئیل چې د دې عهدنامې په هر یو شرط باندې به پوره طور عمل کیدے شي. او میر او د هغهٔ اولاد به پشت په

پشت په خپل ملک باندې په ډېر امن و امان او په خودمختارۍ سره قابضان وي او د هر قسم اندروني او بيروني فساد نه به محفوظ وي."

دې نـه پس باوجود د مير علي مراد د بدوردو نه مير رستم خان په دې عهدنامه باندې مهر ولګولو. د هغې شرطونه حسب ذيل وو :

"He, now holding my hand, said in a most affectionate manner that he knew that I was not an Englishman, and that I had a real regard for the welfare of Sindh and therefore I must tell him candidly whether the acceptance of the proposed treaty by him will realy increase the friendship and satisfaction of the Governor-General and of the sovereign in England, or that, after the present object was gained, he shall be put aside as useless. I assurred the Mir, pledging my word and honour, as well as that of Sir Alexander Burns on the part of the Govt; (as he had told me),that every article of the treaty shall strictly be adhered to and that the Mir and his decendants will from generatiom to generation enjoy the peaceable and independant authority of their possessions without fearing any internal or external commotions: on which he affixed his seal, notwithstanding the open and repeated remonstrances of the Mir Ali Morad,.................

Art. 1st--- There shall be perpetual friendship, alliance and unity of interest between the Hon'ble E. I. C. and the Mir Rustam Khan Talpoor, and his heirs and successors, from generation to generation, and the friends and enemies of one party shall be the friends and enemies of both.

Art. 2nd--- The British Govt; engages to protect the principality and territory of Khairpur.

Art. 3rd--- The Mir Rustam Khan, and his heirs, and successors, will act in subordinate cooperation with the British Govt; and acknowledge its supermacy, and not have any connection with any other chiefs and states.

Art. 4th--- The Mir and his heirs and successers, will not enter into negotiation with any chief or state without the knowledge and sanction of the British Govt; but the usual amicable correspondence with friends and relatives shall continue.

Art. 5th--- The Mir and his heirs and successors, will not commit aggression on any one. If by accident any dispute arises with any one, the settlement of it shall be submitted to the arbitration and award of the British Govt.

Art. 6th--- The Mir will furnish troops according to his means, at the requisition of the British Govt; and render it all and every necessary aid and assistance throughout his territory during the continuance of war, and approve of all the defensive preparations which it may make, while the peace and security of the countries on the other side of the Indus may be threatened, but the British Govt; will not covet a dam or drain of the territories enjoyed by His Highness and his heirs, nor the fortress on this bank or that bank of the river Indus.

Art. 7th--- The Mir and his heirs and his successors shall be absolute rulers of their country, and the British jurisdiction shall not be introduced into that Principality, nor will any of the Balochies, servants, dependants, relatives, or subjects of the Mir be listend to, should they complain against the said Mir.

Art. 8th--- In order to improve by every means possible the growing intercourse by the river Indus, the Mir Rustam Khan promises all co-operation with the other Powers in any measures which may be hereafter thought necessary for extending and facilitating the commerce and navigation of the Indus.

Art. 9th--- In order to still further secure the relations of amity and peace, which have so long subsisted between the Khairpur State and the British Govt; it is agreed that an accredited British Minister shall reside at the court of Khairpur, and that the Mir shall also be at liberty to depute an agent to reside at the court of the British Govt; and the British Minister shall be empowered to change his ordinary place of residence, as may from time to seem expedient, and be attended by such an escort as may be deemed suitable by his Govt.

Art. 10th--- This treaty of nine articles having been concluded, and signed, sealed by Lieut. Col. Sir A. Burns, Kt., Envoy, on the part of the Rt. Hon'ble George Lord Auckland, G. C. B., Governor General of India, and the Mir Rustam Khan, on the part of himself, chief of Khairpur, the ratification by the Rt. Hon'ble the Governor General shall be exchanged within forty five days from the present date.

Done at Khairpur, this twenty-forth day of December 1838, corresponding with the 6th day of Shawal A. H. 1254."

ترجمه :

دفعه ۱ : د آنریبل ایسټ انډیا کمپني او د میر رستم خان تالپور او د هغهٔ د وارثانو او جانشینانو په منځکښې به پشت په پشت دوامي دوستي، اتحاد او دمفادو یو والے وي. او د هر یو دوست دشمن به د بل هم دوست دشمن وي.

دفعه ۲ : حکومت برطانیه د خیرپور د علاقې او د صوبې د حفاظت کولو لوظ کوي.

دفعه ۳ : میر رستم خان او د هغهٔ وارثان او جانشینان به حکومت برطانیه سره د ماتحتۍ تعاون کوي او د حکومت برطانیه مشري تسلیموي. او هغه به بل هیڅ حاکم او حکومت سره تعلق نهٔ ساتي.

دفعه ۴ : میر او د هغهٔ وارثان او جانشینان به بل هیڅ حاکم او حکومت سره بغیر د حکومت برطانیه د علم او د منظورۍ نه عهدوپیمان نهٔ کوي مګر عام د اشنایی خط و کتابت به دوستانو او خپلوانو سره بدستور جاري ساتي.

دفعه ۵ : میر او د هغهٔ وارثان او جانشینان به د هیچا برخلاف جارحانه کارروائي نهٔ کوي ولې کهٔ چرې چا سره څهٔ جګړه پیښه شوه نو د هغې فیصله به حکومت برطانیه ته په طور د ثالث حواله کیږي.

دفعه ۶ : هر کله چې حکومت برطانیه مطالبه وکړي نو میر به د خپل طاقت مطابق هغوي له فوځونه ورکوي. او تر کومه پورې چې جنګ نښتے وي تر هغه به میر حکومت برطانیه له پخپله علاقه کښې هر قسم ضروري امداد او کومک ورکوي او هر چرې چې د دریائے سندهـ په بله غاړه علاقه کښې څۀ د بدامنی خطره پیدا شي نو حکومت برطانیه هر څۀ مدافعانه تیاری چې کوي نو په هغې باندې به میر ته څۀ اعتراض نۀ وي مګر حکومت برطانیه به د هز هائي نس او د هغۀ د وارثانو او جانشینانو د ملک یو لښتے لا پولې ته هم د لالچ په نظر نۀ ګوري. او نۀ به د هغې یوې قلا ته دا شان ګوري خواه کۀ هغه د دریائے سندهـ په دې غاړه وي یا په هغه غاړه.

دفعه ۷ : میر او د هغۀ وارثان او جانشینان به په خپل ملک کښې دننه مطلق العنان حاکمان وي او انګریزي اختیارات به په دغه علاقه کښې نۀ جاري کیږي نۀ به د یو بلوچ لا د میر د نوکرانو، رشته دارانو یا د رعیت په څۀ خبره غوږ ایښودے شي کۀ چرې هغوي د میر برخلاف څۀ شکایت وکړي.

دفعه ۸ : د دې غرض دپاره چې په دریائے سندهـ کښې روز افزون آمدورفت په هر ممکن طریقه ترقي وکړي نو میر رستم خان لوظ کوي چې زۀ به ټولو حکومتونو سره په هغه ټولو تجویزونو کښې تعاون کوم چې کوم هغوي په دریائے سندهـ کښې د تجارت او جهازرانی د زیاتولو دپاره مناسب ګڼي.

دفعه ۹ : د دې غرض دپاره چې د دوستی او د صلح کوم تعلقات چې د ډیرې مودې نه د حکومت برطانیه او د حکومت خیرپور ترمنځه قائم دي هغه نور هم مضبوط شي په دې خبره آمنا کیږي چې یو باقاعده انګریزي وزیر به د خیرپور په حکومت کښې استوګنه کوي او میر ته به هم اختیار وي چې هغه خپل یو مختار په حکومت برطانیه کښې د وسیدو دپاره مقرر کړي. انګریزي وزیر ته به اختیار وي چې هغه خپل سکونت هر کله چې هغۀ ته وقتاً فوقتاً مناسب معلومیږي د یو ځاے نه بل ځاے ته منتقل کړي او ځان سره دومره فوځ محافظ وساتي چې څومره د هغۀ حکومت مناسب ګڼي.

دفعه ۱۰ : لفټیننټ سر الیګزنډر برنس نائټ چې د رائټ آنریبل جارج لارډ آکلینډ جي سي بي ګورنر جنرل انډیا د طرف نه خاص سفیر دے او میر رستم خان حاکم خیرپور پخپله د خپل طرف نه دا عهدنامه چې په نهو شرطونو مشتمل ده، طے کړه او په هغې ئې دستخطونه او مهرونه ولګول. د دې منظوري به د رائټ آنریبل ګورنر جنرل د طرف نه د نن نه په پنځۀ خلویښت ورځې کښې راورسي.

نن په شلیریشتم دسمبر 1838ء مطابق شپږم شوال 1254هجري په مقام د خیرپور طے شوه."

ناظرینو ته به د دې عهدنامې د شرطونو په لوستو معلومه شوې وي چې د هندوستان انګریزي حکومت بغیر د څهٔ وجې نه د توري او فوځي پیش قدمۍ په زور د میر خیرپور نه د هغهٔ خودمختاري وشوکوله او هغه ئ هیڅ بې هیڅه خپل یو ماتحت ریاست کړو. څهٔ وخت چې میر رستم خان په دې عهدنامه باندې دستخط وکړو نو موهن لعل هغهٔ ته یوه بله عهدنامه د دستخط دپاره پیش کړه چې په هغې کښې د بهکر د قلا انګریزانو ته د حواله کولو شرط درج وهٔ. د موهن لعل مطلب دا وهٔ چې دا دویمه عهدنامه به هله پسته میر رستم خان ته پیش کوم چې څهٔ وخت هغه په اوله عهدنامه باندې دستخط وکړي مګر څهٔ وخت چې هغهٔ دا دویمه عهدنامه ولوسته نو هغهٔ فوراً د وړومبې عهدنامې د شرط نمبر شپږم حواله موهن لعل ته ورکړه او ورته ئ ووې چې د دې شرط په رُو سره انګریزي ګورنمنټ دا اقرار کوي چې مونږ به د خیرپور د علاقې یو لښتي یا پولې یا د دریائے سندھ په دواړو غاړو یوې قلا ته هم د لالچ او حرص په نظر نهٔ ګورو.

موهن لعل هغهٔ ته په جواب کښې ووئیل چې انګریزي حکومت به د خپلې عهدنامې د هر لفظ مکمله پابندي کوي او زهٔ به په خپله هم هیچرې داسې کار ونهٔ کړم چې په هغې د میر رستم خان حقوق پائمال کړم. او دغه شان به په حکومت هند او په برنس باندې بدنامي راولم. موهن لعل وائي چې بیا ما هغهٔ ته ووئیل چې دې کښې شک نشته چې د شپږم شرط مطابق ګورنمنټ دا اقرار کړے دے چې مونږ به د دریائے سندھ په دې یا په هغه غاړه په یوې قلا باندې قبضه نهٔ کوو مګر چونکې د بهکر قلا نهٔ د دریائے سندھ په دې غاړه واقع ده او نهٔ په هغه غاړه بلکې د دواړو غاړو په منځکښې په جزیره کښې واقع ده د دې دپاره شرط نمبر شپږم په دې نهٔ حاوي کیږي.

د موهن لعل د خلې د شهادت نه د هغهٔ خپله او د هغهٔ د مالکانو د ایمانداری او دیانتداری اندازه دې په خپله لوستونکي ولګوي. د موهن لعل خپل الفاظ لاندې درج دي :

**" On reading the Article the Mir Rustam Khan refered to the 6th article of the treaty in which it is stated that the English will not covet a Dam or drain of the territories enjoyed by His Highness and his heirs, nor any Fortress on this bank or that bank of river Indus. I replied to the Mir that the English Govt; will adhere to every word of the article in which it has engaged, and I shall be the last person to commit any unjust trespass or oversight of the conditions which might reflect any stigma or disgrace on the Govt; and on his friend Sir A. Burns who has deputed me to perform such important transactions; adding that in the 6th article my govt; has indeed bound itself not to covet any land or Fortress on this or that bank of the river Indus, but that the separate article strictly stands by that condition of the treaty while it demands the possession of the Fort of Bhakkar, which is situated in the Island between the banks and which is thus quite free of the argument now used by**

the Mir." (Mohen Lal)

میر علي مراد بیا په دې خبرو کښې دخل ورکړو او میر رستم خان ته ئ په ډیره لاس راښکلو او سر ئ ورته وخوځولو چې هغه ورځ ډیره لرې نۀ ده چې په فیرنګیانو باندې د اعتبار کولو بیوقوفي به او د سر الیګزنډر برنس او د موهن لعل په خوږو خبرو باندې د اعتبار کولو نادانـي بـه په ټول خاندان باندې یو لوے مصیبت راښکته کړي او ډیر قریب ده چې دا انګریزي ایجنټان په څۀ موده پس د عهدنامې په یو بل ټکي ګوتې کیږدي او د هغې به څۀ بل څۀ معنيٰ راوباسي او لکه څرنګ چې د بهکر قلا درنه غواړي بیا به درنه خپل صدر مقام هم واخلي.

میر رستم خان ورته په جواب کښې ووئیل چې زما ډیره د عمر په وجه سپینه شوې ده. مګر په دې ټول عمر کښې ما له چا دوکه نۀ ده راکړے او نۀ راسره چرې چا بې لوظي کړې ده اوس ما انګریزانو سره خپل ځان تړلے دے او د ښیګړې په طمع باندې مې ځان د هغوي د انصاف او د فیاضی سمندر ته غورځولے دے نو اوس به د راتلونکي واقعاتو نه معلومیږي چې آیا زۀ ژوندے راوځم او په لاس کښې مرغلرې راوباسم او کۀ کنجکې. بیا به زما مثال د هغې حکومتونو دپاره چې د فیرنګیانو د دوستی خواهش مند وي یوه نموه وي بیا ئ ووئیل چې هر کله ما نولس شرطونه د وړومبے اقرار نامې په ځان منلي دي نو دا بل شرط به هم ومنم د دې نه پس هغۀ په دې بله عهدنامه باندې هم خپل مهر ولګولو او موهن لعل له ئ واپس ورکړه.

د دې عهدنامې نه څۀ لږه موده پس بیا موهن لعل او سر الیګزنډر برنس میر رستم خان ته ووئیل چې د بهکر قلا باندې ګورنمنټ صرف د ضرورت وخت دپاره قبضه کوي ځکه چې د افغانستان د جنګ په دوران کښې به هغوي په هغې کښې خزانه او سامان جنګ ساتي او هر کله چې جنګ ختم شي نو بیا به میر رستم خان ته واپس کړې شي.

موهن لعل چې څۀ وخت په خپلې مدعا کښې کامیاب شو نو د میر رستم خان دستخط شوے عهدنامه ئ ځان سره راواخسته او شکارپور ته برنس له راغے په کوم کار کښې چې برنس د څلورو پنځو میاشتو د ګفت و شنید باوجود کامیاب شوے نۀ وۀ موهن لعل په هغې کښې د میر رستم خان د هم قوم کیدو په سبب او د هغۀ د دروغو ربښتیاو وعدو په وجه کامیاب شو. ګورنر جنرل د موهن لعل د دې خدمت تش په الفاظو کښې ډیره شکریه ادا کړه.

په څلیریشتم جنوری کال 1839ء دي آرمي آف دي انډین د بنګالي فوځ د روهړي په مقام باندې سر هنري منین کمانډر انچیف سره شامل شو. وړومبے نه دا فیصله شوې وه چې دا فوځ به د روهړي د مقام نه شپږ میله بره د سیند نه پورې وځي. مګر میجر تهامسن د

انګریزانو چیف انجنیر دا رائ پیش کړه چې د بهکر د قلا د خوا نه بل ځائے په دریائے سندهـ باندې پـل جوړول نامکن دي په دې باندې د میر رستم خان او د انګریزانو په منځکښې بله جګړه پیښه شوه.

میجر لیچ او موهن لعل بیا خیرپور ته لاړل او په قسماقسم چلونو او هنرونو باندې ئ میر رستم خان ته دلاسه ورکړه چې تۀ د خپل رشته دارانو او تربورانو خبرو ته غوږ مۀ ږده او مۀ په مونږ بې اعتباري کوه اګر چې د بلوچو ټول قوم او د میر رستم خان خاندان د دې سخت مخالف وۀ چې انګریزانو له دې د سندهـ په علاقه کښې په دې قسم شرطونو لار ورکړې شي او د میر رستم خان په خپل زړۀ کښې هم د فیرنګیانو د ایمانداری او دیانتداری په حقله ډیر شکوک وو. مګر چونکې انګریزي چاړۀ د هغۀ په مری سوره وه هغه مجبور وۀ چې د هغوي ټول شرطونه ئ منلے وے. پس هغۀ د ډیرو فکرونو نه وروستو د پُل جوړولو اجازت ورکړو او فوځ د دریائے سندهـ نه پورې وتو. اوس انګریزانو هغۀ ته ووئیل چې د بهکر قلا مونږ ته حواله کړه میر رستم خان میر علي مراد او میر مبارک او میر سنګهي او د هغوي وزیر فتح محمد غوري په جواب کښې ووئیل چې تاسو خو لا نۀ د حیدراباد سندهـ میر سره څۀ عهدنامه کړې ده او نۀ تاسو لا نور چا سره څۀ فیصله کړې ده نو کۀ چرې تاسو زما نه دا قلا اوس قبضه کړئ نو مونږ به په ټول وطن کښې رسوا او بې عزته شو.

انګریزانو بیا هغۀ له موهن لعل ورواستولو او ورته ئ ووئیل چې کۀ چرې تۀ مونږ ته قلا په رضا نۀ حواله کوئ نو په زور به ئ قبضه کړو. مختصر خبره دا ده چې باوجود د هغۀ د ورونو د سخت مخالفت نه میر رستم خان د بهکر د قلا کنجي موهن لعل ته حواله کړه. موهن لعل کونجي سر ولوبي کاټن ته ورکړه او هغۀ او کمانډر انچیف او برنس سرح د فوځه په قلا کښې ورداخل شو او انګریزي جنډه ئ پکښې وچته کړه.

دیخوا نـه د بمبئ فوځ د لارډ کین د کمانډ د لاندې د سندهـ په طرف راروان وۀ څۀ وخت چې انګریزانو د میر رستم خان نه د هرقسم اختیاراتو په اخستلو کښې کامیاب شول نو میران حیدراباد هم مجبو شول چې خپله خودمختاري فیرنګیانو ته حواله کړي هغوي سره چې کومه عهدنامه وشوه د هغې شرطونه حسب ذیل دي :

دا عهدنامه وړومبے د تجویز په شکل کښې میرانو ته د حیدر اباد په مقام کرنل پوټنګر پیش کړه.

"Whereas treaties of friendship and amity had from time to time been entered into between the British and the Hyderabad Govts; and whereas circumstances have lately occurred which render it expedient and necessary to revise those treaties; with a view to which this draft had been prepared, agreeably to instructions addressed by the Rt. Hon'ble George Lord Auckland, Governor General of India etc., etc., to Col. Henry Pottinger, Resident in Sindh.

"Ist----That there shall be lasting friendship, alliance and amity between the Hon'ble E. I. C. and the Hyderabad Govt; and the provisions of all former treaties, not modified or annulled by the present one, are hereby confirmed.

"2nd.--- The Governor General of India has commanded that a British force shall be kept in Sindh, and stationed at the city of Tatta, where a cantonment will be formed. The strength of this force is to depend on the pleasure of the Governor-General of India.

"3rd--- Mir Nur Mohd. Khan, Mir Nasir Mohd. Khan and Mir Mohammad Khan bind themselves to pay annually the sum of Rs...............in part of the expense of the force, from the presence of which their respective territories will derive such vast advantages.

"4th--- The Chiefs of Bilochi tribes, and all others holding grants (Jaedads), pensions (Vazifas), Jagirs (Tesols), etc., from the different Mirs, are to continue to enjoy them as they now do, the Mirs being answerable for their peaceful conduct towards the British Govt; and its subjects.

"5th--- The British Govt; pledges itself neither to interfere, in any degree, great or small, in the internal management of affairs of the several possessions of the Mirs, nor to think of introducing, in any shape, its regulation or adalats.

"6th--- The British Govt; pledges itself on pretence to listen to the complaints of the Balochi chiefs, or any other subjects, whether Musalmans or Hindus, or other castes, against their Highnesses.

"7th--- The British Govt; agrees to protect Sindh from all foreign possession.

"8th--- The Company's rupee being exactly of the same value as that called the "Bakru" or Temure, it is to be considered current in the British Cantonment and in this country at the same rate; but in every case, when the British Govt; may have to coin any of the rupees now in circulation in Sindh, the seigniorage or dues of the Sindh Govt; shall be paid, agreeable to the custom of the country.

"9th--- Should any Mir attack or injure the possessions of another Mir,or those of his dependents, the resident of Sindh will, on receiving the sanction of the G.G. of India, act as mediator between then but it is to be distinctly understood that he (the Resident) is not to intermedle with trifling points.

10th--- Should any Balochi, or other chief, rebel against the authority of the Mir to whom he appertains, or attack the lands or other possessions of any other Mir or Chief and the Mir to whom he appertains shall declared his inablility to coerce such chief, the Governor General will take his case into consideration, on its being submitted to his Lordship by the resident, and will, should his Lordship suffiecient reasons, order such assistance to be given as may be requisite to punish the offender.

11th ---- There Highnesses the Mir agree to form no new treaties, or enter into any engagement with foreign states, without the knowledge and concurrence of

the British Govt; but their Highnesses will, of course, carry on friendly correspondence as usual, with all their neighbours.

12th ---- The British Govt agrees, on its part, not to form any treaty or enter into an engagement that can possibly affect the interest of Sindh, without the concurrence and knowledge of the their Highnesses the Mirs.

13th---- During the months of the year that Vessels can not enter the mouths of the Indus, the communication between Bombay and Sindh by sea is to be carried on by Karachi Bandar, and should it at any time be requisite to send public stores to that place, every facility is to be afforded by the Sindh authorities to their being landed and forwarded under a guard which will be sent from Tatta to receive and watch them.

14th ---- The Mirs agree to either build, or allow the British Govt; to build an enclosure and store house at Karachi as a depot for stores, their Highnesses incurring no sort of expense on this account and being repaid (should they build the enclosure etc) for any outlay they may incur.

15th ---- Should any British merchant or others bring goods by way of Karachi Bandar, the duties of the Sindh Govt; (both important and transit) will be paid on them, agreeable to the custom of the country and no exemption of such duties shall be claimed.

16th ---- Amongst the great objects of the governor General in fixing a British Force in Sindh is that of perfecting the arrangement which have been in progress for several years for the opening of the Indus to traders, and as the thoroughfare will now be increased an hundred fold the contracting Govts agree to abolish all tolls on the rivers from the sea to Ferozpur.

17th ---- To protect the interests of the differents govt; from any loss that might arise from the unrestrained intercourse provided for in the preceding article it is hereby agreed, that all goods landed and sold (Except those that are sold in the British camp or cantonment) shall be subject to duties agreeable to the usage of Sindh and the other states on that point and no exceptions should be made to this stipulation.

18th ---- Goods of all kinds may be brought by merchants and others, to the mouth of the Indus (Gorabi) at the proper season, and kept there, at the pleasure of the owners, till the best period of the years for sending them up the river; but should any merchant land and sell any part of his merchandise, either at Gorabi or any where else (Except at the British camp or Cantonment) Such merchants shall pay the duties on them.

19th ---- Should the British Govt; at any time require and apply for the aid of the Army of Sindh, their Highnesses the mirs agree to furnish it according to their means; and in any such case the Governor General of India will take into consideration the expense the Mir will incur, with a view to the dimunition of the

sum mentioned in third article of this treaty.

20th ---- The terms of this treaty are to be considered applicable to Mir Subedar Khan of Hyderabad.

21st ---- A Separate treaty has been made between the British Govt and Mir Rustam Khan of Khairpur.

22nd ---- Should Mir Sher Muhammad of Mirpur wish it a treaty on the basis of this one will be made with him.

23rd ---- The British Govt; undertakes to guarantee to the different Mirs, their heirs and successors, on their acquiescing in the terms of this treaty the perpetual enjoyment of their respective possession; and the friends and enemies of one party shall be friends and enemies of other.

This treaty of twenty three articles having been concluded and signed and sealed, its ratification by the Rt Honourable the G.G. shall be exchanged within forty days from this date.

Done at Hyderabad on the day of 1839 A.D. corresponding with the day of 1254 Hijri.

ترجمه : "چونکې د حکومت برطانيه او د حکومت سنده ترمنځه وقتاً فوقتاً د دوستی او د صلح عهدنامې شوي دي او چونکې د څۀ مودې نه دا شان واقعات پيښ شوي دي چې د هغې په وجه په دې عهدنامو کښې ترميمونه مناسب او ضروري معلوميږي له دې کبله د رائټ آنريبل جارج لارډ آکلينډ گورنر جنرل هندوستان وغيره وغيره د هداياتو مطابق چې کوم کرنل هنري پوټنگر ريزيډنټ سنده ته راستولي وو دا مسوده تيره شوې ده .

شرط اول : د آنريبل ايسټ انډيا کمپنی او د حکومت حيدراباد په منځ کښې به دائمي دوستي اتحاد او صلح وي. او د وړومبو ټولو عهدنامو کوم کوم شرطونه چې د دې عهدنامو په شرطونو باندې چې ترميم شوي يا منسوخ شوي نۀ وي هغه به واجب العمل گڼلے شي.

شرط دويم : د هندوستان-گورنر جنرل حکم کړے دے چې يو انگريزي فوځ به په سنده کښې د ټهټهه په مقام باندې ساتلے شي. په دغه مقام به يوه چاوڼی اچولے شي. د دې فوځ شمار وغيره به د هندوستان د گورنر جنرل په خوښه وي.

شرط دريم : چونکې د ميران سنده علاقو ته به د دې فوځ د قيام ډيره فائده رسي په دې سبب د دې فوځ د جزوي خرڅ دپاره به مير نور محمد خان، مير نصير محمد خان او مير محمد خان ...... روپی سالانه ادا کوي.

شرط څلورم : د بلوچو د ټپې کوم کوم سرداران او نور مواجب خواران (جائداد) پنشن خوارۀ (وظيفه خوارۀ) جاگيرداران وغيره چې د بيل بيل مير نه انعامات خوري هغوي به بدستور انعامات خوري او ميران سنده به ذمه وار وي چې د هغوی رويه به حکومت برطانيه او د هغۀ رعايا سره د امن وي.

شرط پنځم : حکومت برطانیه دا اقرار کوي چې هغوي به د میرانو په مقبوضه علاقو کښې دننه نۀ په انتظامي او نۀ په نورو معاملو کښې کۀ وړې وي او کۀ لویې د هیڅ قسم دخل ورکوي. او نۀ به د هغوي په علاقو کښې د خپلو قوانینو یا د عدالتونو د جاري کولو خیال کوي.

شرط شپږم : حکومت برطانیه اقرار کوي چې هغوي به په هیڅ وجه د بلوچ سردارانو یا د میرانو په نور رعایا کښې د بل چا خواه هغه مسلمان وي یا هندو یا څوک د بل قام وي شکایت ته غوږ نۀ ږدي.

شرط اووم : حکومت برطانیه اقرار کوي چې هغوي به د سندهـ علاقې حفاظت د هرې بیروني حملې نه کوي.

شرط اتم : چونکې د کمپنی د روپی قیمت او د "بکرو" د تیموری روپی قیمت یو هومره دے په دې سبب به د کمپنی روپی په انګریزي چاوڼی او په دې ټول ملک کښې هم په یو نرخ چلیږي ولې کۀ هر چرې انګریزي حکومت ته د هغه روپو جوړولو ضررت پیښ شي چې کوم نن ورځې په سندهـ کښې چلیږي نو د دې ملک د رواج مطابق به سندهـ حکومت ته د هغې فیس ادا کیدے شي.

شرط نهم : کۀ چرې یو میر د بل میر یا یو میر د خپل رعیت په مقبوضه علاقه باندې حمله وکړې یا وبلوسیږي نو د سندهـ ریزیډنټ به د ګورنر جنرل د منظوری حاصلولو نه پس د هغوي ترمنځه په طور د ثالث خبرې اترې کوي. نو دا خبره دې په ښۀ شان سره واضحه وي چې دا ریزیډنټ به په وړو وړو معاملو کښې هیچرې هم دخل نۀ ورکوي.

شرط لسم : کۀ چرې یو بلوچي، یا بل یو سردار د خپل میر د حکومت نه بغاوت وکړي یا ئ د بل میر یا سردار په مقبوضه علاقه یا زمکه باندې حمله وکړه او د هغۀ خپل میر په هغۀ باندې د زور اچولو نه ناچاري ښکاره کړه نو د ریزیډنټ په رپورټ باندې به ګورنر جنرل دا شان معاملات د غور لاندې راولي او اګر کۀ ګورنر جنرل ته کافي وجوهات په دې باره کښې معلوم شي نو هغه به هر څومره امداد چې ضروري ګڼي هغه میر یا سردار له د مجرم د سزا ورکولو په غرض ورکوي.

شرط یوولسم : هز هائي نسز میران سندهـ اقرار کوي چې هغوي به د حکومت برطانیه د علم او د منظوری نه بغیر هیڅ بیروني حکومت سره څۀ نوې معاهده یا اقرار نۀ کوي ولې هغوي ته به حسب معمول خپلو ټولو ګاونډیانو سره د دوستانه خط و کتابت کولو اختیار وي.

شرط دولسم : حکومت برطانیه هم د خپل طرف نه دا اقرار کوي چې هغوي به د میران سندهـ د علم او د منظورۍ نه بغیر هیچا سره څۀ داسې نوې معاهده یا اقرار نۀ کوي چې په

هغې کښې د سندهـ حکومت ته د څهٔ نقصان پيښيدو احتمال وي.

شرط ديارلسم : پـه کـومـو مياشتو کښې چې جهازونه د دريائے سندهـ په خلو کښې نهٔ شي رادننه کيدے نو د بمبئ او د سندهـ په منځکښې به د اوبو آمدورفت د کراچئ په بندر کيږي او هـر چرې چې دې علاقې ته د سرکاري سامان د راستولو ضرورت پيښيږي نو حکام سندهـ بـه د دې سـامـان په خشکئ باندې د کوزولو او د گارډ د لاندې چې کوم به د ټهټهه نه د هغه مـال د وصـولـئ او حـفـاظـت په غرض راستولے کيږي د هغې د ليږدولو دپاره سهولتونه مهيا کوي.

شرط څوارلسم : ميران سنـدهـ اقـرار کـوي چـې هغوي به لا په خپله په کراچئ کښې د سـامـان د ايښـودو دپـاره يـوه احـاطـه جوړوي او لا به د حکومت برطانيه ته د هغې د جوړولو اجازت ورکوي وغيره وغيره.

شرط پنځلسم : هر چرې چې انگريزي سوداگران يا نور کسان د کراچئ په لاره د تجارت سـامـان راوړي نـو د سندهـ حکومت به د ملک د رواج مطابق په هغې باندې د درآمد وغيره محصول اخلي او هيڅوک به هم د دې نه مستثنيٰ نهٔ وي.

شرط شپاړسم : پـه مـلـک سـنـدهـ کښې د انگريزي فوځ د ديره کولو نه د گورنر جنرل يوه لويه مدعا دا ده چې هغه ټول انتظامات دې سر ته ورسي کوم چې په وروستو څو کالو کښې د دې مـطـلـب دپاره روان وو. چې دريائے سندهـ دې د تجارتي کاروبار دپاره ازاد کړې شي او چـونـکې اوس به په هغې کښې آمدورفت سل چنده زيات شي له دې کبله مقران په دې اتفاق کـوي چـې د سـمـندر نه تر فيروزپوره پورې نور د هر قسم محصولونه د سيند په لاره منسوخ شول.

شرط اوولسم : د دې غـرض دپـاره چـې د سـنـدهـ مختلفو حکومتونو ته چرته د وروستني شـرط څهٔ نقصان ونهٔ رسي په دې خبره اتفاق کيږي چې کوم مال په خشکئ کوز شي او خرڅ شـي (مـاسـوا د هغه مال نه کوم چې په انگريزي کيمپ يا چاوڼئ کښې خرڅ شي) نو په هغه به هم په هغه مقام د سندهـ او د نورې علاقې د رواج مطابق محصول وصوليږي. او د دې قاعدې نه به هيڅوک هم مستثنيٰ نهٔ وي.

شرط اتلسم : سـوداگـران او نـورو خـلقو ته به په خپل موسم کښې د هر قسم مال د دريائے سندهـ خلې ته (گورابي) د راوړو اجازت وي. او تر هغې پورې به هغوي ته په هغه ځاے کښې د مـال ايښـودو اختيـار وي تـر کـومه پورې چې د مال مخ په بره د وړلو دپاره ښهٔ موسم نهٔ وي راغلے. ولې کهٔ يو سوداگر خپل مال په خشکئ باندې کوز کړو او خرڅ ئې کړو لا په گورابي کښې لا پـه بـل ځاے کښـې (سـوائ د انـگـريـزي کـيـمـپ يا چاوڼئ نه) نو هغه به په هغه مال محصول ورکوي.

شرط نولسم : هـر چرې چې حکومت برطانیه ته د سندهـ د فوځ د امداد غوښتلو ضرورت پیښ شـو نـو د هـز هـائـنسـز میـران لـوظ کـوي چې مونږ به خپل حسب استطاعت دا امداد ورکـوؤ. پـه دغـه صـورت کښـې بـه ګورنر جنرل په هغه اخراجاتو باندې غور کوي چې کوم میـران پـه دې سـلسـله کښې په خپل فوځ باندې وکړي او بیا به هغه دا رقم د هغه رقم نه منها کړي چې کوم د شرط نمبر دویم د لاندې د میرانو په ذمه راځي.

شرط شلم : د دې عهدنامې د شرطونو به میر صوبیدار خان د حیدر اباد هم پابند وي.

شرط یویشتم : د حکومت برطانیه او میر رستم خان ترمنځ یوه بیله عهدنامه شوې ده.

شرط دویشتم : کـۀ چرې د میرپور شیر محمد غواړي نو د دې عهدنامې په شان به هغۀ سره هم یوه عهدنامه وشي.

شرط درویشتم : حـکـومت برطانیه په ځان باندې د میرانو د هغوي د وارثانو ، د جانشینانو د طـرف نـه (هـر کـلـه چې هـغـوي د دې عهدنامې شرطونه منظور کړي) دا ذمه واري اخلي چې هغوي به خپلې خپلې مقبوضه علاقې د ټول عمر دپاره خوري او د یو فریق دوستان او دشمنان به د بل فریق هم دوستان او دشمنان وي.

دا عهـدنـامـه مشتـمـل پـه درویشتـو شـرطـونو طے شوه په هغې دستخطونه وشول او مهـرونـه ولـګـیـدل. د دې عهـدنـامې مـنـظوري به رائټ آنریبل ګورنر جنرل د نن تاریخ نه په شلویښتو ورځو کښې دننه ورکړې.

په مقام د حیدراباد په تاریخ 1835ء مطابق 1254هجري"

ځـۀ وخـت چې دا مـجـوزه عـهـدنامه کرنل پوټنګر ته حکومت هند د میران سندهـ د دستخط کولو دپاره راولیږله نو په پنځلسم دسمبر 1838ء هغۀ ګورنمنټ هند ته ولیکل چې کـۀ چرې میران سندهـ په دې خبره خبر شي چې زمونږ نیت د هغوي په ملک کښې انګریزي فوځ دیره کول دي نو زما یقین دے چې میران سندهـ بالاتفاق مونږ ته پره یوه کړي او په ډیرې سـختـی سره به د دې شرط مقابله وکړي مګر د ګورنر جنرل په اصرار باندې هم دغه مجوزه عهدنامه کپتان ایسټ وک د میران سندهـ په مخکښې پیش کړه.

ځـۀ وخـت چې میر نـور محمد خان دا شرطونه ولوستل او ځان ئې د هغې په مطلب پـوهـه کـړو نـو د بـکـس نـه هغه ټولې ورومبۍ عهدنامې چې کومې د هغوي او د انګریزانو په مـنـځـکښـې شوې وې راوښکلے او دې انګریزي افسر ته ئې ووئیل چې د دې عهدنامو به څۀ چـل کـیـږي. او بیـا ئې ورته ووئیل چې د کومې ورځې نه د سندهـ او د انګریزي حکومت هند تـعـلـقـات پـیـدا شوي دي نو همیش هغوي زمونږ نه څۀ نه څۀ نوې مطالبه کړې ده ولې ستاسو حـکـومـت تـه پـه هـغې تسلي نۀ ده شوې. مونږ ستاسو د دوستی خواهشمند یو خو مونږ دا نۀ غواړو چې ټول عمر دې تاسو مونږ پسې لګیا یئ. مونږ په خپله علاقه کښې ستاسو فوځونو له

لار هم ورکړه ولې اوس ستاسو دلته د پاتې کیدو نیت دے.

د دې ټولو خبرو په دې انګریزي افسر څۀ اثر ونۀ شو. د میران سندھ په لاس کښې هم څۀ طاقت او زور نۀ وۀ چې په زور ئې مقابله کړې وے. د سر جان کین فوځ حیدراباد طرف ته راروان وۀ او د هغۀ ریزرو فوځ په کراچۍ باندې په زور قبضه کړې وه. سر الیګزنډر برنس د میران خیرپور نه د بهکر قلا قبضه کړې وه او سر ولوبي کاټن سره د خپله فوځه هم د هغه طرف نه په حیدراباد باندې راروان وۀ. په داسې واقعاتو کښې د میران سندھ بله هیڅ لار نۀ وه سوائې د دې نه چې دا ذلیل شرطونه په خپل ځان باندې ومني له دې کبله هغوي په ډیر سخت خفګان او په ناراضی دا عهدنامه منظوره کړه او درې لکه روپۍ د شرط نمبر دریم د لاندې د انګریزي فوځ د اخراجاتو دپاره ئې په ځان ومنلے.

هر کله چې دا عهدنامه ګورنر جنرل ته د منظورۍ دپاره لاړه نو هغۀ د هغې نه د کراچۍ بندر متعلق شرطونه دیارلسم، څوارلسم او پنځلسم ووهل ځکه چې انګریزي فوځونو په دې اثنا کښې په کراچۍ قبضه کړې وه او بیا ئې د هغې د پرېښودو نیت نۀ وۀ.

بهرکیف د افغانستان د فتح کولو په لار کښې فیرنګیانو د سندھ خودمختاري هم وشوکوله او د هغه میران ئې خپل باجګزار کړل. ډیره موده نۀ وه تیره شوے چې انګریزان په دې هم صبر نۀ شول. په کال 1842ء کښې لارډ آکلینډ د هندوستان نه لاړو او لارډ ایلنبرو د هغۀ په ځاے مقرر شو. دې وائسراے بالکل بلا وجه او په دروغو تورو بورو د سندھ د مسخر کولو اراده وکړه او سر چارلس نیپیر ته ئې حکم وکړو چې تۀ سره د خپلو فوځونو په سندھ پیشقدمي وکړه او د ټول مک فوځې حکومت په خپل لاس کښې واخله. چنانچه هغه لاړو او په لږه عرصه کښې ئې قسماقسم بې بنیاده او غلط الزامونه په میران سندھ ولګول او ټوله علاقه ئې تربنه قبضه کړه. د سندھ د تسخیر دا واقعه دومره دردانګیزه خلاف انصاف او ظالمانه ده چې د هغې تفصیل په دې موقع بیانول بجائے خود یو لوے تاریخ دے. مګر کوم ناظرین چې د هغې د اصلي واقعاتو د لوستو خواهش مند وي نو مونږ هغوي ته د یو کتاب چې د هغې نوم "هسټري آف برټش انډیا" مصنفۀ تهارنټن جلد ۲ مخ ۴۰۸ نه تر ۴۲۲ حواله ورکوؤ.

مختصر قصه دا ده چې د سر چارلس نیپیر د رویې او د هغۀ د بدعهدو او د بې لوظی نه ټول بلوچ قوم او شپږ واړه میران سندھ دومره تنګ شول چې د هغوي د میاني په مقام باندې چې د حیدر اباد نه په شپږ میله فاصله باندې پروت دے د هغۀ د مقابلې دپاره راجمع شول. سر چارلس نیپئیر دخداے نه دا غوښتله چې په څۀ شان باندې زۀ د سندھ باشنده ګان په جنګ کولو مجبور کړم. او بیا د تورې په زور باندې هغوي ټول زیر و زبر کړم. د میاني د جنګ نه وړومبے د مختلفو عهدنامو په ذریعه انګریزي فوځ په مختلفو ځایونو باندې چې د

هغې فوځې اهمیت ډېر زیات وۀ قبضې کړے وے. په اوولسمه فروری 1843ء سر چارلس نیپیر د میانې په مقام بانديې د سندهـ په جمع شوي فوځ باندې حمله وکړه یو ډېر خونریز جنګ وشو مګر بلوچو شکست وخوړو. او په شلمه فروری 1843ء د سندهـ ښېږو وارو میرانو ځان سر چارلس نیپیر ته حواله کړو. د هغې نه پس هغه په حیدراباد کښې داخل شو او ښېږ واړه میران ئ بمبی ته جلاوطن کړل.

د میران سندهـ برخلاف ګورنر جنرل هند دا الزام لګولے وۀ چې هر کله د انګریزانو او د میران سندهـ په منځکښې یوه عهدنامه باندې د میرانو د دستخط خبرې کیدے نو هغوي په کرنل آؤټرم انګریزي کمشنر باندې په فریب حمله وکړه مګر د مسلم واقعاتو نه دا الزام په میران سندهـ باندې بالکل غلط ثابت شو. واقعات دا دي چې هر کله سر چارلس نیپیر سره د خپلو فوځونو د سندهـ په علاقه کښې ځاے په ځاے ګرځیدو او د فوځې اهمیت په ځایونو باندې ئ قبضې کولے نو میران سندهـ بار بار هغۀ ته دا خبره ګوش ګزار کړه چې د انګریزي فوځ نقل و حرکت او په مختلفو مقاماتو د هغوي قبضې کول به یو ځل د بلوچو ټول قوم ډېر سخت برافروخته کړي او نتیجه به دا شي چې هغوي به د خپل ملک د خودمختاری په تحفظ کښې د انګریزي فوځ برخلاف وسله راوچته کړي او بیا به د هغې ټول الزام زمونږ په سر وي.

سر چارلس نیپیر د هغوي په دې خبرو باندې غوږ ایښودو ته بالکل تیار نۀ وۀ بلکې هغۀ هم دا غوښتل چې د انګریزي فوځ د پیشقدمی په سبب د بلوچو قوم په اشتعال کښې راشي او یو دا شان کار وکړي چې د هغې په بهانه زۀ ټول سندهـ په انګریزي حکومت کښې داخل کړم. دا بهانه د هغۀ په لاس دا شان راغله چې په پنځلسمه فروری 1843ء د بلوچو څۀ لږ شان خلق راجمع شول او د کرنل آؤټرم انګریزي کمشنر په کور باندې ئ حمله وکړه دا کرنل آؤټرم حکومت هند میران سندهـ له د هغوي د زړې اشنایی په وجه سره د ګورنر جنرل د یوې بلې عهدنامې د میرانو د دستخط دپاره راستولے وۀ. په دې عهدنامه کښې میران سندهـ نه څۀ علاقه انګریزانو د سالانه خراج په ځاے غوښتې وه او دا ئ هم پکښې یو شرط لیکلے وۀ چې پس د دې نه میران سندهـ په خپل نوم سکه نۀ جاري کوي بلکې حکومت هند به د هغوي دپاره زر تیاروي او په یو مخ به ئ د انګلستان د بادشاه تصویر وي.

په شپږم دسمبر 1842ء دا عهدنامه د هغوي د دستخط دپاره پیش کړې شوه مګر هغوي په دې د دستخط کولو نه انکار وکړو څۀ وخت چې هم دا خبرې اترې لا هغه شان روانې وے چې سر چارلس نیپیر ورو ورو خپل فوځونه علاقه کښې ځاے په ځاے دیره کول. په دولسمه فروری 1843ء میران سندهـ په دې عهدنامو هم دستخطونه وکړل اګر چې د کرنل آؤټرم په کور باندې کومه حمله شوې وه په هغې کښې د میران سندهـ هیڅ لاس نۀ وۀ

او کۀ چرې میر رستم خان اراده د هغۀ د قتلولو وے نو په ډیره اسانتیا سره به ئ هغه او د هغۀ پارټـي بالکل قتل کړې وه. ولې ګورنر جنرل د دې واقعې نه ناجائزه فائده واخسته چنانچه د دې واقعې په بنا سر چارلس نیپیر د ګورنر جنرل په حکم د سندهـ د مکمل تسخیر اراده وکړه . په دې مقام کښې مونږ ناظرینو ته د کیپټن ایسټ وک رائ د تسخیر سندهـ د جواز متعلق پیش کوؤ. دا هغه سړے دے چې چا د 1829ء عهدنامه د کوز سندهـ میرانو ته د دستخط دپاره پیش کړې وه. دا رائ هغۀ د خپل تقریر په دوران کښې د کمپنی د مالکانو کورټ ته پیش کړې وه :

" Sir before I conclude, I would advert to two points which catch the eye at the first glance; and with superficial observers, divert the attention from the glaring injustice of the previous proceedings. On the 5th March 1843, the Governor General issued a proclamation to the following effect :

The Governor General cannot forgive a treacherous attack upon a representative of the Govt; nor can be forgive hostile aggression prepared by those who were in the act of signing a treaty.

Now, Sir, both these assertions distort the facts. The treaty was signed on the 12th incorrectly stated by the Governor General the 14th. The attack on Major Outram took place on the 15th. In the intermediate days Major Outram was distincly warned, that the Mirs could not control the Balochis. They had already saved his life once, and the lies of his escort, on their return from their conference.

In 1839 I was placed in exactly the same possition. Aware of the weakness of the internal Govt; of Sindh, and the inability of the Mirs to protect me, I thought it my duty to withdraw in order to avcid collision. If I had been attacked after having been warned, could I have called the attack treacherous? Certainly not, Does Major Outram designate it as a treacherous act? He does not. Let him be summoned to the bar of the House of Commons and answer for himself.

Sir, the Mirs had not the power to prevent the attack. We have no right to judge them according to our European notions of a Government. They were simply the heads of one of the Principal tribe. The Talpurs, and the recognised channel of communication with foreign powers; but they had not even the jurisdiction of life and death amongst some of the other powerful tribes- the Lagharis for instance- they ruled through the Balochi Chiefs. They could influence and persuade, but they could not restrain nor enforce obedience when opposed to Balochi prejudices. Capt. Postans state and I can confirm the statement, that the meanest Balochi will, at times, unhesitatingly heard the Mir in public Durbar.

Sir I feel convinced that the Mirs were not only not favourable to this attack, but exerted all their influence to prevent it, otherwise Major Outram must have been crushed. Will any man assert that the same troops who remained such a desperate struggle at Miani against Sir Charles Napier's whole army, could not have destroyed

a detachment of one hundred men.

And now Sir, let us turn to the charge of hostile aggressions prepared by those who were in the act of signing a treaty. Sir, the whole conduct of the Mirs show that their preparations were strictly defensive- that they had not the least notion of aggressive measure. The Governor General himself writes on the 14th of November, The design of the Mirs would seem, by the intelligence transmitted, to be of defensive character only. We must recollect, Sir, that this is written after the assembly of a preponderating force at Sukkar, after the Mirs were aware of the provisions of the new treaty, and after it had been officially reported that Mirs had been informed that the English meditated treachery.

Sir, none but the most obstinately prejudiced or the wilfully blind could accuse these unhappy princes of a desire of hostile aggression. It is against all the evidence- it is against all probability. Is it to be believed that the Mirs would have stood our staunch friends in the day of one defeat and adversity to break with us at the moment when our armies were returning flushed with victory? Is it credible that, with the experience of our recent successes in Afghanistan, they would rush headlong into so unequal a contest? I would refer the court to a most admirable letter of Sir Henry Pottinger, dated 20th June 1839. It is too long to quote, but bears remarkably on this point.

Sir, the Mirs knew their inability to cope with us in the field; they depended upon our sense of justice. What does Mir Nasir Khan write? I know that the Kings of England never sanction injustice. In all their letters in every conversation, they refer to the treaty of 1839. Mir Nasir calls it a wall or bund. On signing the new treaty, they express their determination to petition the Governor General.

Let us read Mir Rustam's letter to Sir Charles Napier; a more affecting document it never fell to my lot to persue. He writes God knows we have no intension of opposing the British, nor a thought of war of fighting; we have not the power. Ever since my possissions were guaranteed to me and my posterity by the British Govt; under a formal treaty, I have considered myself a dependent of theirs, and have thought myself secure. I have always attended to the least wish of the British officers, and now that my territory is being taken from me, I am at a loss to find out the reason of so harsh a measure. I have committed no faults. If any is alleged against me, let me hear what it is, and I shall be prepared with an answer. I feel strong in the possession of that treaty, and I trust to the consideration of the British still. If without any fault of mine, you choose to seize my territory by force, I shall not oppose you, but I shall consent to and observe the provisions of the new treaty. However I am now, and shall continue to be, a suiter for justice and kindly consideration at your hands. Sir, my very blood boils with indignation when I contemplate the wrongs of this old and veneable chieftain. When Political Agent in upper Sindh, he treated me as a father does a son I have sat with him in his inmost

apartments, and heard him express his satisfaction that he had secured the friendship of the British Govt; there was nothing that he would not have done to show his devotion and good feeling; he proved it in a thousand instances and what is his reward? He is hurled from his throne, torne from his wife and family, and sent to die in a prison in a foreign land. Sir, I am one of those who believe that retribution awaits the guilty even in this world, and it is my solemn conviction that some great calamity will overtake this country if such monstrous acts of injustice are sanctioned and upheld.

But sir, I have shown what Mir Rustam writes. What does he do? He offers to throw himself into the hands of the British representative. Is it possible to show more plainly his submission and his reliance on the British Govt; his confidence in British faith and strict observance of treaties; that confidence which has done more to raise up our wonderful Empire in the East than all the expliots of the British valour?

Sir, notwithstanding Sir Charles Napier's repeated acts of hostility, notwithstanding his threatening and aggressive march on Hyderabad, all those who know Sindh must be aware that the Mirs could have no intension of proceeding to extremities. Sir, if they had meditated hostiities, they would have sent away their wives and families, they would have concealed their treasures, they would have called in their levers, especially Mir Mohammad who was considered the bravest of their warriors, and who, on the prospect of hostilities with Lord Kean's Army in 1839, brought his coffin and shroud to Hyderabad. And, Sir, if conscious of guilt, they never would have surrendered themselves immediately after the battle of Miani. Sir, I repeat, it is only those determined to convict against all evidence; it is only those prepared to trample upon all obligations, that will pronounce judgement against the unfortunate Mirs of Sindh.

Sir, on the 4th of last April I happened to be in the House of commons, when a noble Lord, an honour to his country, gave utterence to the following sentiments ( I quote from memory, but the words made a deep inpression upon me at the time, and found a responsive echo in my breast) England (he said), with one arm resting on the East and other on the west, is in too many instances trampling under foot all moral and religious obligations. If such is to be the course of our future policy; if our superiority in arts, in arms, in science, and in strength, is to be turned to the injury, and not the advantage of mankind, I would.much prefer that we should shrink within the proportion of one public virtue; and descend to the limits of a third rate power. While these words rand in my ears I cast a rapid glance at the events, which within a brief space of time have thrown such s fearful interest over our Eastern Empire.

Sir, it is painful to reflect on the gallant lives thus uselessly sacrificed or the misery caused to hundreds of English families; and if we have suffered misery, we

have inflicted a hundred times greater. That may be a consolation to some, but to me it only conveys deeper shame and sorrow. War at all times is a great evil, but an unnecessary and unjust war it is fearful to comtemplate, and fearful the responsibility of those who throw their sanction over a crime of such magnitude.

Sir, no wonder than that my mind turned with some sort of satisfaction to the reflection that these execrable wars were at an end, that a new era was dawning on Hindustan, and that profiting by experience, we should direct all our energies to the maintenance of peace and to the moral and physical advancement of the millions over whom we are permitted by a grrcious Providence to preside. Little did I imaging that the very next mail would bring accounts of an act of aggression to which one Indian annals unhappily so fertile in such acts, can afford no parallel. Little did I imagine that the very man who had denounced the Afghan expedition as a crime, who had gone out of his way to make his total dissent from the Policy of his predecessors, who had so recently put forth to the world that memorable declaration, that content with the limits that nature appears to have assigned to its Empire, the Govt; of India will devote all its efforts to the establishment and maintenance of general peace. little did I think that the author of this declaration, without even the plea of an imaginary or real danger to the State, with all the aggravations of ingratitudde for services rendered during a season of unwonted trial, would have grasped at frivolous and flimsy pretexts to goad a barbarous but brave people to desparation, and again to let loose all the horrors and calamity of wars."

ترجمه :" صاحبه اګاهو د دې نه چې زۀ خپل تقرير ختم کړم زۀ هغو دوؤ خبرو له راځم چې په ورومبي نظر د هر چا خيال راکاږي او د ظاهر بين خلقو توجه د ورومبے کارروايي د ښکاره بې انصافۍ نه بل خوا ته اړوي. په پنځم مارچ 1843ء ګورنر جنرل يو اعلان د دې مضمون وښکلے دے چې د ګورنر جنرل د حکومت په يو نمائنده باندې د فريب نه ډکه حمله نشي معاف کولے او نۀ هغه دا خبره درګزر کولے شي چې د هغوي برخلاف دې هغه کسان د حملې کولو تياري وکړي چې هغوي مونږ سره په يوه عهدنامه باندې دستخط کولو ته تيار نۀ وي.

مګر صاحبه دا دواړه الزامونه اصلي واقعات په بيل رنګ کښې ښکاره کوي په عهدنامې دستخط په دولسم تاريخ شوے وۀ حالانکې ګورنر جنرل غلط وائي چې په څوارلسم باندې شوے دے حمله په ميجر آؤټرم په پنځلسم تاريخ شوې ده او په دې درمياني ورځو کښې ميجر آؤټرم صاف طور باندې متنبه شوے وۀ چې ميران سنده د بلوچو قبيله په خپل قابو کښې نشي ساتلے. ميرانو يو ځل ورومبے هم د هغۀ زندګي بچ کړې وه او د هغۀ د محافظې دستې هم څۀ وخت چې هغوي د کانفرنس نه واپس راتلل.

په 1839ء کښې زۀ بعينه هم په دغه شان حالاتو کښې پيښ وم چونکې ماته د سنده د حکومت اندروني کمزوري معلومه وه او د دې نه خبر وم چې ميران زما حفاظت نشي کولے

نو ما دا خپل فرض وګڼل چې د تصادم نه د بچ کیدو دپاره زهٔ د سندهـ نه واپس شم. نو کهٔ چرې باوجود د خبرداری نه په ما حمله شوې وې نو آیا ما دې حملې ته د فریب حمله وئیلې شوه؟ هیچرې هم نه. آیا میجر آؤټرم دې حملې ته فریبنا که حمله وئیلې شي؟ هغه خو ورته نهٔ وائي هغهٔ د دارالعوام د عدالت په مخکښې راوبلئ او هغه دې پخپله جواب وکړې.

صاحبه دا د میرانو په طاقت کښې نهٔ وه چې د دې حملې بندیز ئې کړې وې نو مونږ له دا مناسب دي چې د هغوي حکومت ته د یورپین معیار حکومت په نظر وګورو. هغوي خو صرف د یوې لویې قبیلې یعنې د تالپوریانو مشران دي او بیروني حکومتونو سره د رسد رسائل یوه مسلم ذریعه وو ولې هغوي ته د بعضو قبیلو د خلقو مثلاً د لغاریانو د مرګ اختیارات هم حاصل نهٔ وو. هغوي خو به د بلوچو سردارانو په ذریعه حکومت کولو. دې کښې شک نشته چې هغوي په خلقو اثر غورځولې شو او هغوي له ئې د یو کار ترغیب هم ورکولې شو. مګر د بلوچو د رواج برخلاف نهٔ خو په زور په هغوي باندې یوه خبره منلې شوه او نهٔ ئې هغوي منع کولې شو.

کپتان پوسټنز وائي او زهٔ هم د هغهٔ د بیان تائید کوم چې معمولي نه معمولي بلوچ هم بعضې اوقات بې درګه په عام دربار کښې د میر مخالفت کولې شي.

صاحبه زما تسلي ده چې میران نهٔ صرف دا چې د دې حملې برخلاف وو بلکې هغوي د دې د بندیز دپاره د خپل اثر نه انتهائي کار اخستې دې کهٔ نهٔ وې نو میجر آؤټرم به بالکل نیست و ناود شوې وهٔ. کوم فوځ چې په داسې مضبوطۍ سره د سر چارلس نیپیر د ټولو فوځونو مقابله په میاني کښې وکړه نو آیا دا څوک وئیلې شي چې کهٔ چرې هغوي غوښتې نو د سلو کسو دا دسته به ئې تباه کړې نهٔ وه.

او صاحبه راځئ چې اوس مونږ بل الزام ته توجه وکړو یعنې دا چې د دې کسانو په انګریزي فوځ د حملې کولو تیاری په هغه وخت کښې کولې چې هغوي مونږ سره په عهدنامه دستخط کولو ته نیت کولو. صاحبه د میرانو د ټولې رویې نه دا معلومیږي چې د هغوي تیاری صرف د ځان د بچاؤ دپاره وې. او د جارحانه کارروایي خیال هم د هغوي په زړونو کښې نهٔ وهٔ.

ګورنر جنرل په څوارلسم نومبر لیکي چې " کوم خبرونه راکړي شوي دي د هغې نه معلومیږي چې د میرانو بندوبست د خپل بچاؤ دپاره وهٔ. " صاحبه مونږ له دا خبره یاد ساتل پکار دي چې دا تحریر د هغه وخت نه پس لیکلې شوې وهٔ چې یو ډیر لوې فوځ په سکهر باندې د ورمبې نه راجمع شوې وهٔ او میرانو ته د نوې عهدنامې شرطونه معلوم شوي وو. او سرکاري طور باندې د دې خبرې رپورټ هم شوې وهٔ چې میرانو ته دا اطلاع رسیدلې ده چې فیرنګیان هغوي سره فریب کول غواړي. صاحبه ماسوائ د هغې خلقو نه چې د تعصب په ضد

ولاړ دي يا د قصده خپلې سترګې پټوي بل هيڅوک هم په دې بدقسمته شهزادګانو باندې د جارحانه حملې کولو الزام نشي لګولے. ټول شهادت د دې الزام خلاف دے. بلکې دا الزام غير اغلب هم دے. آيا په دې څوک باور کولے شي چې زمونږ د مصيبت او د شکست په وخت کښې خو دې ميران زمونږ پاخۀ دوستان وي ولې څۀ وخت چې زمونږ فوځونه د فتح په نشه کښې مست راروان وي نو هغه وخت دې هغوي مونږ سره ورانه کړي. آيا په دې څوک اعتبار کولے شي چې په افغانستان کښې زمونږ د دومره فتوحاتو نه پس دې ميران دا شان غوره ټېپه په دې غير مساوي جنګ کښې خپل ځان راوغورځوي. زۀ غواړم چې د عدالت توجه د سر هنري پوټنګر يو قابل تعريف خط ته مورخه شلم جون 1839ء ته راکاړم. چونکې دا خط ډير وږد دے له د ې کبله هغه ټول په دې ځاے کښې نشم بيانولے. مګر هغه د دې معاملې په حقله زبردست خيال لري.

صاحبه ميرانو ته دا پته ده چې هغوي مونږ سره په ميدان جنګ کښې د مقابلې طاقت نۀ لري د هغوي ټول دارومدار زمونږ د انصاف په جذبه باندې وۀ. مير ناصر خان څۀ ليکي. هغه وائي چې ماته معلومه ده چې د انګلستان بادشاهان هيچرې بې انصافي نۀ خوښوي. ميران په خپلې هرې يوې چيټۍ کښې او په خپل هر يوه ګفتګو کښې د 1839ء د معاهدې حواله ورکوي. مير ناصر دې عهدنامې ته ديوال يا بند وائي. څۀ وخت چې هغوي په نوې معاهدې باندې دستخطونه وکړل نو هغوي ووئيل چې مونږ به ضرور د دې متعلق ګورنر جنرل ته درخواست کوؤ.

راځئ چې اوس مونږ هغه خط ولولو چې کوم مير رستم سر چارلس نيپير ته ليکلے وۀ. د دې نه زياتي د اخلاص خط ما هيچرې نۀ دے لوستے. هغه ليکي "خداے ته معلومه ده چې مونږ د فيرنګيانو د مقابلې اراده نۀ لرو او نۀ هغوي سره د جنګ جګړې خيال قدرې لرو. په مونږ کښې د دې طاقت نشته د هغې وزرځې نه چې حکومت برطانيه د يو باقاعده عهدنامې په ذريعه زما او زما د اولاد ذمه وار شوے دے چې زمونږ مقبوضات به زمونږ په قبضه کښې محفوظ وي نو ما خپل ځان د هغوي يو ماتحت سرے تصور کړے دے او ځان مې سلامت ګڼلے دے. او اوس چې زما نه زما ملک اخستے شي نو زۀ د دا شان سخت سلوک په سبب بالکل نۀ پوهيږم ما هيڅ ګناه نۀ ده کړے کۀ چرې په ما څۀ الزام وي نو ماته ئې ښکاره کړئ چې زۀ ئې جواب درکړم. زۀ خو خپل ځان د دې عهدنامې په موجودګۍ کښې ډير مضبوط ګڼم. او زما اوس هم د فيرنګيانو په مهربانۍ باندې اعتبار دے کۀ چرې تاسو بې قصوره زما ملک زما نه په زور قبضه کول غواړئ نو زۀ خو ستاسو مقابله نۀ کوم بلکې زۀ به پرې رضا يم او د نوې عهدنامې په شرطونو باندې به عمل کوم مګر سره د دې زۀ اوس هم او بيا آئنده هم د انصاف طمع دار يم او ستاسو د لاسه به د مهربانۍ د سلوک اميد کوم."

صاحبه څۀ وخت چې زۀ دې بوړا اوشريف سردار سره دا ناروا سلوک وينم نو د قهر او غصې نه زما وينه جوش وهي. څۀ وخت چې زۀ بر سندهـ کښې پوليټيکل ايجنټ وم نو هغۀ ما سره دا شان سلوک کولو لکه چې پلار زوي سره کوي زۀ اکثر هغۀ سره د هغۀ په کور کښې دننه ناست يم او ما د هغۀ د خلې نه په دې خبره د خوشحالي اظهار اوريدلے دے چې ما د فيرنګيانو دوستي حاصله کړې ده. د خپل عقيدت او د دوستۍ د جذباتو د ښکاره کولو دپاره هغۀ په هيڅ څيز هم هيله نۀ ده کړے. هغۀ دا خپل جذبات په يو زر طريقو باندې ښکاره کړي وو ولې هغۀ له د دې څۀ بدله ورکړې شوه. هغه د تخته کوز وغورځولے شو او د خپلې بي بي او بال بچ نه وشوکولے شو او بل ملک ته په جيلخانه کښې د مرګ شپې ورځې تيرولو دپاره جلاوطن شو.

صاحبه زۀ په هغې خلقو کښې يم چې د چا دا عقيده ده چې مجرم سړي له به خدائے هم په دې دنيا سزا ورکوي او زما دا پوخ يقين دے چې کۀ چرې مونږ د بې انصافۍ دا شان ناروا کارونو ته ښۀ ووايو او منظوري ورله ورکړو نو په دې ملک باندې به يو لوے آفت نازل شي.

مګر صاحبه ما خو درته تش د مير رستم تحرير واؤرولو راځئ چې د هغۀ عمل ته هم وګورو هغه خپل ځان انګريزي نمائنده ته د حواله کولو دپاره پيش کړو آيا د دې نه زياتي بل څيز دا خبره دومره صاف طور سره ښودلے شي چې د هغۀ اراده د اطاعت وه او په حکومت برطانيه باندې د هغۀ پوره اعتماد وۀ او د فيرنګيانو په ايماندارۍ باندې د هغۀ يقين وۀ او دا ئ عقيده وه چې فيرنګيان هميشه د خپلو عهدنامو پابندي کوي او حقيقت دا دے چې په مشرق کښې زمونږ د دې عجيب و غريب سلطنت د خوړولو اصلي اسباب دومره د فيرنګيانو د بهادرۍ کارنامې نۀ وے څومره چې په خلقو کښې د دې عقيدې موجودګي وه.

صاحبه باوجود د سر چارلس نيپير د څو څو د دشمنۍ د کارونو نه او سره د دې چې د هغۀ رويه د حملې وه او بيا هغۀ په حيدراباد باندې پيشقدمي هم وکړه ولې بيا هم هغۀ ټولو کسانو ته چې د سندهـ د ملک نه واقف دي هغوي ته دا معلومه ده چې د ميرانو هيچرې هم جنګ کولو ته نيت نۀ وۀ. صاحبه کۀ چرې د هغوي اراده د جنګ کولو وے نو هغوي به خپلې ښځې او بال بچ چرته استولي وو خپله خزانه به ئ پټه کړې وه او هغوي به خپل ټول ملاتړ راپوځاے کړي وو. خاص طور سره مير شير محمد چې د دوئ په ټولو ننګيالو کښې زيات بهادر ګڼلے شي. دا هغه مير شير محمد دے چې څۀ وخت په کال 1839ء کښې د هغه او د لارډ کين په فوځونو کښې د جنګ ويره وه نو هغۀ خپل تابوت او کفن حيدراباد ته راوغوښتل. او اے صاحبه کۀ چرې هغوي ته د خپل جرم علم وے نو هغوي به د ميانۍ د جنګ نه پس دا شان سمدستي ځان نۀ ږۀ حواله کړے.

صاحبه زهٔ بیا وایم چې صرف هغه څوک چې دا قصد کړے وي چې شهادت نه به خلاف زهٔ سړے ګنګاروم یا هغه څوک چې د بل حقوق پائمال کولو ته تیار وي دا رنګ خلق به د بدقسمت میران سندهه برخلاف فیصله صادر کړي.

صاحبه د وروستي اپریل په څلورم تاریخ باندې زهٔ اتفاق سره په دارالعوام کښې موجود وم چې یو شریف لارډ چې د خپل ملک یو ننګیالے دے د لاندینوخیالاتو اظهار کړے وهٔ زهٔ د هغهٔ تقریر د یاد نه بیانوم. مګر د هغهٔ د هغه الفاظو هغه وخت زما په زړهٔ باندې یو لوے اثر پیدا کړے وهٔ. او څهٔ چې زما په خپل زړهٔ کښې وو د هغې ترجماني ئ کړې وه. هغهٔ وئیلي وو چې د انګلستان یو بازو په مشرق او بل په مغرب باندې پروت دے مګر په ډیرو موقعو کښې هغهٔ تولې اخلاقي او مذهبي ذمه واری د پښو د لاندې غوبل کړي دي کهٔ چرې په راتلونکې زمانه کښې هم زمونږ طریقه عمل په دې شان وي کهٔ چرې زمونږ نوې والے په فنون کښې، په اسلحه کښې ، په سائنس او په طاقت کښې د بني نوع انسان د نقصان دپاره استعمالیږي نه چې د هغوي د فائدې دپاره نو زهٔ به دا خبره ډیره زیاته غوره کړم چې مونږ دې د خپلو قومي اخلاقو په حدودو کښې دننه دننه راغونډ شو. او د یو دریم درجې حکومت ته دې ځان رابښکته کړو. هرکله چې دا الفاظ زما په غوږونو کښې چورلیدل نو ما په هغې تولې واقعاتو باندې په تیزی سره یو نظر وزغلولو چې چا زمونږ د مشرق په سلطنت باندې په لږه موده کښې ډیر خوفناک اثر غورځولے دے.

صاحبه د دومره بهادرو نفوسو په بیسوده تباه کیدو یا کوم غم چې سلګونو انګریزي خیلخانو ته په دې جنګ کښې پیښ شوے دے په هغې باندې فکر کول یو دردناک داستان دے. کهٔ چرې مونږ ته غم په دې جنګ کښې پیښ شوے دے نو مونږ نورو ته سل چنده زیات غم پیښ کړے دے. ځنې خلقو ته به دا څهٔ د تسکین باعث وي مګر زما په خیال کښې دا څیز زمونږ دپاره د سخت شرم او اندوه باعث دے. جنګ په هر وخت کښې یو ډیر خراب څیز دے ولې د یو غیر ضروري او ناروا جنګ تصور هم خطرناک څیز دے. او بیا د هغه خلقو ذمه واري ډیره خوفناکه ده چې څوک د داسې عظیم الشان جرم منظوري ورکوي.

نو صاحبه، دا څهٔ د تعجب خبره نهٔ ده چې زما زړهٔ ته په دې خبره څهٔ نا څهٔ تسلي شوې وه چې دا لعنتي جنګونه ختم شول. او په هندوستان باندې یو نوے دور راغلو او دا چې د تجربو نه مونږ سبق واخستو نو اوس به مونږ خپل ټول کوششونه د امن د قائمولو او د هغې لکونو خلقو اخلاقي او مادي ترقی دپاره صرف کوؤ چې په چا باندې خداوند کریم مونږ له د حکومت کولو اختیار راکړے دے. هغه ساعت زما په خیال کښې هم دا خبره نهٔ راتله چې هلته سمدستي دویم ډاک به د تعدي او دا شان قصه مونږ ته راورسوي چې د هغې مثال به د هندوستان په تاریخ کښې (چې د بدقسمتی نه د دې قسمه واقعاتو نه ډک دے) هم بیامونډل ګران دي.

حکومت کولو اختیار راکړے دے. هغه ساعت زما په خیال کښې هم دا خبره نهٔ راتله چې هډو سمدستي دویم ډاک به د تعدي او دا شان قصه مونږ ته راورسوي چې د هغې مثال به د هندوستان په تاریخ کښې (چې د بدقسمتۍ نه د دې قسمه واقعاتو نه ډک دے) هم بیاموندل ګران دي. هغه ساعت دا خبره زما په فکر کښې هم نهٔ راتله چې هم هغه سړے چې چا د افغانستان د لام دومره مذمت کړے دے چې هغې ته ئې یو لوے جرم وئیلے دے او چا چې د خپلو پخوانو جانشینانو ټولې پالیسۍ ته د سخت اختلاف ظاهرولو دپاره څهٔ غیر معمولي رویه اختیار کړې وه او چا چې اوس اوس دنیا ته دا د یاد ساتلو قابل اعلان کړے وهٔ چې:

"حکومت هند به آئنده د هغې حدودو په دننه قانع وي چې کوم قدرت د هغوي د سلطنت دپاره مقرر کړي دي او هغوي به خپل تمام تر کوششونه د عام امن قائمولو دپاره صرف کوي."

نو دا خبره زما په وهم کښې هم نهٔ راتله چې د دې اعلان مصنف به بغیر د دې نه چې خپل حکومت ته د څهٔ فرضي یا د اصلي خطرې عذر جوړ کړي په هغې ټولو خدماتو باندې به د ناشکرۍ اوبهٔ وګرځوي چې کوم د غیرمعمولي ازمیښت او امتحان په وخت کښې ادا شوي وو. او فضول او بې بنیاده بهانې به ونیسي د دې دپاره چې هغه یو وحشي مګر بهادر قوم لاچار او مجبور کړي او بیا په هغوي باندې د جنګ ټول مصیبتونه او افتونه رابرسیره کړي."

## باب

اوس مونږ بیا د انګریزي فوځ په افغانستان باندې د پیشقدمۍ قصه راخلو. څهٔ وخت چې انګریزي فوځونه د فیروز پور نه روانیدل د هغې نه وړومبے او وروستو کرنل ویډ پیشماره چیټۍ د افغانستان مختلفو خوانینو او سردارانو ته د شاه شجاع افغانستان ته د راتلو او د انګریزي فوځ د پیشقدمۍ متعلق لیکلې وے. او هغوي ته ئې د لویو لویو انعامونو، جاګیرونو او تنخواګانو لالچ او طمع ورکړې وه. چې تاسو شاه شجاع سره یو ځاے شئ او د دوست محمد خان پړه پریږدئ. چنانچه د دې وعدو او لالچونو په وجه ځنې لوے لوے سرداران لکه سکندر خان پوپلزے، او ولي محمد خان اسحاقزے شاه شجاع سره شامل شول. او بیا په جمع دې سردارانو خپل سرې د افغانستان هر ګوټ ته د دوست محمد خان خلاف د خلقو د پاڅولو او د بغاوت کولو دپاره ولیږل. چنانچه دې سړو په هر ځاے کښې د انګریزانو د سخاوت، طاقت او دبدبې خبرونه چارچاپیره خوارهٔ کړل. او هر چا ته ئې دا وسواسونه په زړهٔ کښې واچول چې د انګریزانو مقابله کول ناممکن دي. او هغوي سره په جنګ کولو کښې د قوم او د اولس تباهي ده. چنانچه ډیر دا قسم د ایمان کچه سرداران چې

د بارکزو سره ئې تعلقات ښهٔ نهٔ وو په دې خبرو باندې وغولیدل او په ډیر تعداد کښې ئې شاه شجاع سره د همدردی او اطاعت اظهار وکړو. هر څومره چې انګریزي فوځونه د سندهـ نه مخ په بره افغانستان ته ور وړاندې کیدل نو د بلوچستان او افغانستان نه بیشماره خطونه د شاه شجاع او انګریزي افسرانو په نوم د خپل متابعت د ښکاره کولو پحقله راتلل. د افغانستان هر یو سردار او د خان په زړهٔ کښې د فیرنګیانو د وعدو په وجه دا امیدونه پیدا شول چې هم به مونږ له زمونږ زوړ بادشاه واپس راشي او هم چې چا د ټولو نه وړومبے د خپل اطاعت اعلان وکړو د فیرنګیانو په دولت به ماله مال شي. انګریزي فوځ سره مسټر ولیم میکناټن په طور د انګریزي سفیر شاه شجاع سره همرکاب روان وهٔ. په شکارپور کښې دا عظیم الشان لښکر سره د شاه شجاع د لفټیننټ جنرل سر جان کین د سالارۍ د لاندې راجمع شو. برنس هم په حیثیت د پولیټیکل افسر دې فوځ سره یو ځاے شو. د میکناټن او برنس په خپل منځکښې رقابت وهٔ مګر چونکې میکناټن مشر او د ټولو پولیټیکل معاملو ذمه وار وهٔ د دې دپاره برنس دا نهٔ غوښتل چې زهٔ او میکناټن دې دواړه افغانستان ته یو ځاے لاړ شو. چنانچه میکناټن برنس ته په شکارپور کښې د پاتې کیدو حکم ورکړو. مګر چونکې برنس د افغانستان په معاملاتو کښې یو خاص مهارت لرلو د دې دپاره کمانډر انچیف سر جان کین دا منشا وه چې برنس دې انګریزي فوځ سره شامل شي او افغانستان ته لاړ شي. په دې اثنا کښې میکناټن برنس د میر محراب خان والئ قلات نصیر سره د معاهدې کولو په غرض ولیږلو له دې کبله برنس دا خیال وکړو چې هرکله زهٔ د بلوچستان صدر مقام پورې ځم نو بیا به زهٔ تر افغانستانه هم لاړ شم. میکناټن دا خبره منظوره کړه او برنس قلات نصیر ته په خپل کار پسې روان شو.

انګریزي فوځ د مارچ په میاشت کښې د شکارپور نه کوچ وکړو او د دادر په خوا کښې د غرونو په لار په درهٔ بولان کښې د داخلیدو دپاره روان شو. دا مقام د افغانستان د فوځونو دپاره دومره مستحکم او مضبوط ځاے وهٔ چې کهٔ چرې د درهٔ بولان په خواوشا کښې په غرونو باندې څهٔ لږه هم په زړورتیا مقابله شوې وے نو انګریزي فوځ به د دې درو نه په وتو کښې کامیاب شوے نهٔ وهٔ مګر پښتنو په دې مقام د مقابلې قطعاً هیڅ کوشش ونهٔ کړو او انګریزي فوځ بې روک ټوک درهٔ بولان باندې وروړاندې شو. دیخوا ته برنس او د هغهٔ میر منشي موهن لعل میر محراب خان سره د تلو دپاره روان شو. هغهٔ سره د مجوزه عهدنامې شرطونه دا وو:

محراب خان به په خپله علاقه بدستور حکومت کوي او د کابل بادشاهي به په ځان باندې تسلیموي. فیرنګیان به میر محراب خان له دوه لکه روپۍ سالانه او دوه زره روپۍ اوس دا وخت په دې غرض ورکوي چې د انګریزي فوځ په شا باندې به هغه په درهٔ بولان د آمدورفت لاره محفوظ و جاري ساتي. دریم شرط دا وهٔ چې في الحال به میر محراب خان د

شاه شجاع او د میکناټن سلام له کوټټې ته راځي، او په حیثیت د انګریزانو د دوست به هغه د انګریزي فوځ د خرڅ خوراک دپاره تسلي بخش انتظام کوي. انګریزانو دا اقرار هم هغهٔ سره وکړو چې مونږ به شهنواز خان ستا دشمن د بلوچو خان نهٔ تسلیموؤ. هرکله چې انګریزان په قندهار او په کابل کښې مضبوط شو نو انګریزي فوځ د سر تهامس ولشائر د سالارۍ د لاندې په قلات باندې حمله وکړه او میر محراب خان په جنګ کښې د فیرنګیانو د لاسه قتل شو. د دې نه پس بیا هغوي د هغهٔ دشمن شهنواز خان د هغهٔ په ځاے د بلوچو خان کړو. او کپتان لوډړے ئ د هغهٔ په صدر مقام کښې مستقل ریزیډنټ مقرر کړو. د میر محراب خان برخلاف فیرنګیانو دا الزام ولګولو چې باوجود د دې اقرار نه هغهٔ درهٔ بولان انګریزانو د آمدورفت دپاره محفوظ ونهٔ ساتلو. او د هغوي ډیر ډاکیان او مخبران د بلوچو د لاسه قتل شو. د محراب خان برخلاف دا الزام آئنده لفتیشونّ بالکل غلط ثابت کړو. کهٔ چرې محراب خان په حقیقت کښې د خپلې معاهدې خلاف ورزي کول غوښتل او دا ئ منشا وے چې انګریزي فوځ دې صحیح سلامت د درهٔ بولان نه ونهٔ وځي نو دا ډیره اغلبه ده چې د انګریزي فوځ یوه لویه حصه به په دې دره کښې بالکل نیست و نابود شوې وه. د انګریزانو هغهٔ ته دا غصه هم وه چې قندهار ته د تلو په وخت کښې محراب خان مونږ له د رسد رسانۍ هیڅ انتظام نهٔ وهٔ کړے. او د دې کبله زمونږ ډیر څاروي او سړي د لوږې او د فاقې نه مړهٔ شول. ولې برنس او میکناټن دواړو په خپلو تحریرونو کښې دا خبره تسلیم کړې ده چې انګریزي فوځونه د خپل آمد په وخت کښې په لاره د ټولې علاقې فصلونه تباه کړي وو. په ټول ملک کښې شین ډکے په نظر نهٔ راتلو. کومه تباهي چې انګریزي فوځونو د بلوچستان په علاقه کښې کړې وه د هغې حال د میکناټن د دې چیټې نه ښهٔ معلومیږي کوم چې هغهٔ په نولسم مارچ د باغ د مقام نه لارډ آکلینډ ته لیکلے وه.

کمپ باغ نولسم مارچ

" د قلات حاکمان ما په ډیر خراب حالت کښې بیاموندل دا صفا معلومیده چې زمونږ دشمنانو هغوي سره ساز باز ساتلے دے ولې مونږ نه د هغوي د خفګان کافي وجوهات هم موجود وو. د هغوي فصلونه ټول تباه شوي دي او کومې اوبهٔ چې د هغوي د پټو د آبپاشۍ دپاره دي هغه مونږ د خپلو فوځونو د استعمال دپاره د هغوي نه را اړولے وے. په دې کښې اکثر نقصانونه زما په خیال لابُدي وو. مګر د دې نقصانونو د کمولو یا د خلقو د رضا کولو دپاره هیڅ هیڅ کوشش نهٔ دے کړے. په دې ملک کښې زمونږ افسران او زمونږ کارروائي دواړه د ځا خوښ نهٔ دي. او ما سره دا ویره ده چې هسې نه چې سر الیګزنډر برنس د خان د غیر دوستانه رویې متعلق هسې د خلقو په افواه ګانو پسې لاړ شي او د څهٔ فوځې کارروایی سفارش وکړي. د دې قسم فوځې کارروایی نه چې مونږ ته د کومو مشکلاتو د پیښیدو

احتمال دے هغه سرہ یقیني طور سره نشي وئيلے. شپه او ورځ زما تمام کوششونه دي خبرې پسې لګيدلي دي چې د دې ملک ټول بااثره خلق دې زمونږ دې پيشقدمۍ سره ځان رضا کړي. او په دې کښې زۀ کامياب شوے يم مګر نۀ صرف خلقو ته د هغوي د سخت نقصان د عوضانې د ورکولو دپاره به د لويو لويو رقمونو ضرورت وي بلکې حکام ته د رشوت ورکولو دپاره هم. لارډ صاحب دې په دې باره کښې په ما پوره اعتبار وساتي. چې زۀ به د سرکاري مال نه يوه روپۍ هم زياتي خرڅ نۀ کړم تر څو پورې چې د هغې لګول اشد ضروري نۀ وي مګر په دې ځاے کښې مونږ بالکل د بلوچو په رحم باندې يو. کۀ چرې هغوي مونږ سره دشمني کولے نو هم نن ورځ هغوي په ډير اسانتيا زمونږ په کيمپ باندې يو دا شان سيلاب را اړولے شي چې هغې به زما ټول فوځ وړے وۀ. او زمونږ ټول مال به ضائع شوے وۀ. پرون راسې د قلات د حاکمانو رويه ډيره ښه ده اوس هغوي زمونږ وفاذار نوکران دي. او وزير دا لوظ کړے دے چې زۀ به سمدستي خپل خان قلات ته خط وليکم او ورته به ووايم چې هغه خپل ټول امداد او کومک فيرنګيانو له بې چون و چرا ورکړي.

سر جان کين د ښاروو د کمي په وجه سخت تکليف کښې پروت دے. او زۀ د دې خيال کولو نه بغير نشم پاتې کيدے چې هغۀ سره د بنګال افسرانو بلا وجه او ناجائز تغافل کړے دے. زۀ نن سحر پخپله بهر ته ووتم چې کوم نقصان فصلونو ته رسيدلے دے د هغې معائنه وکړم. د فصلونو تباهي بيحده ډيره شوې ده. ولې څۀ وخت چې خلقو وليدل چې زۀ د هغوي په شکايتونو کښې ډيره دلچسپي اخلم نو هغوي زما د توقعاتو نه هم زياتي په دې ماته رضامند ښکاره شول. د هغوي د سخت خفګان يوه بله وجه زمونږ نه دا وه چې زمونږ فوځ د هغوي نه څنې کسان او څنې ځاے کښې ټولې تبرې په دې عذر نيولے وے چې هغوي رهزنان دي. د دې هم چې څومره زما وس وۀ ما تلافي وکړه." د ميکناټن خپل الفاظ ملاحظه کړئ.

" I found the Qilat authorities in the worst possible humour. Our enemies have evidently been tampering with them, and they had good cause for dissatisfaction with us; their crops have been destroyed and water intended for emigrating their fields has been diverted to the use of our enemies. A great portion of these evils was perhaps unavoidable, but little or no effort seems to have been made either to mitigate the calamity or to appease the discontent which has been created by our proceedings. Our officers and our measures are alike unpopular in this copuntry and I very much fear that Sir A. Burns may be led by vague rumours of the Khan's unfriendly disposition, to recommend offensive operation against him. In What difficulties we might be involved by such a proceeding it would be impossible to foretell. My strenuous efforts have been day and night directed towards reconciling all persons of influence to our operation; and in this I have been successful; but considerable sums must be expended, not only in remunerating the people for the severe losses they have sustained, but in bribing the authorities.

Your Lordship may rely upon it that I shall not expend one rupee of the public money more than I deem indespensibly necessary; but here we are quite at the mercy of Balochis. This very day, had they been in inimically inclined they might with the greatest ease have turned on inundation into our camp which would have swept away our entire force and every thing belonging to us.

The change in the demeanour of the authorities since yesterday is wonderful. They are now our devoted servants; and the Wazir has promised to write off instantly to his master at Qalat, advising him to give us his entire and unqualified friendship and support. Sir John Keane is in a wretched plight for want of cattle, and I can not help thinking, he has been neglected in a very un warrantable manner by the Bengal authorities.... I went out myself this morning to see what damage had been done to the crops. The devastation is grievous; but the interest which the people saw me taking in their complaints has done more to pacify them than I ever expected. An other source of great dissatisfaction has been the seizure by our troops of different individuals, and even families, on the plea of being robbers. This I have done, all in my power to remedy."

په قلات باندې د انګریزي فوځ د حملې په وخت کښې ناصر خان د محراب خان زوے وتښتېدو او د خپل پلار د حکومت د واپس اخستو دپاره د يو مناسب موقعې په تلاش کښې شو. دېخوا د بلوچو قوم د شاه نواز خان په خانی باندې بالکل رضا نهٔ وو هغه د فيرنګيانو په لاس کښې يو بې طاقته او بې اختياره سړے وۀ او هم په دې سبب هغه د بلوچو قوم عزت او قدر نشو حاصلولے چنانچه هر کله به چې هغوي له موقع په لاس ورتله نو په فيرنګيانو او د هغوي په سړو باندې به ئې حملې کولے. تر دې پورې چې يو ځل بلوچو لفټيننټ والپول کلارک يو انګريزي افسر سره د هغهٔ د اوښانو د يو قافلې بالکل تباه او لوټ کړو. د دې نه پس هغوي او کاکړو د کوئټې محاصره وکړه. او ناصر خان هم د خپل پلار د بدل د اخستو د پاره ميدان ته راووتو. ټول قبائل د هغهٔ د جنډې د لاندې راجمع شول. ځکه چې د هغې علاقې د ټولو پښتنو دا يقين وۀ چې محراب خان بيګناه فيرنګيانو قتل کړے دے. او د هغهٔ په ځاے باندې ئې د خپل لاس يو ګوډې زمونږ په سر باندې کښېنولې ده. ناصر خان په لږه موده کښې د يو قومي تحريک ازادی مشر شو. او دومره زور ئې پيدا کړو چې هغهٔ په قلات باندې حمله وکړه لفټيننټ لوډے ډير ځل خپل حکومت ته د امداد دپاره وليکل خو د بلوچو قبيلې په بر سندهـ هم حمله کړې وه. او د آمدورفت ټولې لارې ئې بندې کړې وے. په دې سبب حکومت هند دپاره قلات ته امداد او کومک رارسول ناممکن وو.

د يو څو ورځو د محاصرې نه پس قلات د ناصر خان لاس ته راغلو شاه نواز خان د بلوچو د خانی نه دست بردار شو. ناصر خان لفټيننټ لوډے ګرفتار کړو او بالاخر څهٔ وخت چې انګريزي فوځونو يو څو مياشتې پس په دادر باندې بيا پيشقدمي وکړه نو د هغهٔ نعش د يو

اوبن په شا باندې قتل شوي بیاموندې شو. انګریزي فوځ چې د درهٔ بولان نه پورې وتو نو د قندهار په طرف ئې پیشقدمي جاري وساتله. سردار کوندل خان د دریو څلورو زرو سورو سره د قندهار نه د مقابلې دپاره راووتو او د ډندي ګولې په مقام باندې ئې خپل کیمپ ولګولو دیخوا نه د فیرنګیانو پولیټیکل افسرانو د خپل طرز عمل مطابق د هغهٔ اکثرو وزیرانو اومشرانو ته رشوتونه او لالچونه د هغهٔ د پرې نه د راوړیدو دپاره ورکړي وو. موهن لعل خپل یو نوکر محمد طاهر قندهار کښې د دې غرض دپاره مخبر مقرر کړے وۀ چې هغه انګریزي فوځ ته د قندهار د دننه حالات متعلق باقاعده خبرونه رسوي. انګریزانو د دې محمد طاهر په ذریعه د سردار کوندل خان لوے وزیر ملا نسو ځان طرف ته راواړولو او د دې ملا په ذریعه دا کار مقرر شو چې تۀ لا خو کوندل خان ته د شاه شجاع د حکومت د تسلیمولو ترغیب ورکړه او لا ئې دې خبرې ته مائل کړه چې هغه د قندهار نه وتښتي. ملا نسو د دې خدمت د کولو وعده وکړه او د دې په عوض کښې موهن لعل د میکناټن د طرف نه یو خط هغهٔ ته ولیکلو چې په هغې کښې فیرنګیانو هغهٔ سره د سدوزو یا د شاه شجاع په دوران حکومت کښې د هغهٔ د ټول مال او جائداد د حفاظت او د هغهٔ تر ژونده پورې د پنشن د ورکولو اقرار وکړو. نو څهٔ وخت چې کوندل خان په انګریزي فوځ د حملې تیاری کولے نو د هغهٔ خپلو سردارانو او افسرانو د هغهٔ په شا د هغهٔ پښې وهلے.

هرکله چې په یو کیمپ کښې دننه د هغې په خپلو مشرانو کښې بي ایماني او رشوت خوري موجوده وي نو د هغه کیمپ د کامیابۍ به څهٔ امید وشي. د کوندل خان دا تجویز وۀ چې په انګریزي فوځ باندې د ګولي ډنډې نه یو شبخون ووهلے شي مګر د هغهٔ د افسرانو دا خوښه وه چې فیرنګیان دې بې ډزه ډوزه په قندهار کښې داخل شي. په دې نمک حرامو او غدارو سردارانو کښې یو حاجي خان کاکړ هم وۀ هرکله چې کوندل خان د شبخون تجویز پیش کړو نو هغهٔ ورته ووې چې د حملې کولو نه وړومبے مونږ له پکار دي چې د دشمن د طاقت د هغوي د قیام د ځاے متعلق پوره پوره حالات معلوم کړو. او خپل ځان ئې د دې خدمت دپاره پیش کړو. دې حاجي خان له هم فیرنګیانو بلهې ورکړې وے او د هغهٔ دا خواهش وۀ چې په څهٔ طریقه زۀ انګریزي فوځ سره شامل شم. چنانچه کوندل خان هغه په دې کار باندې مقرر کړو. ولې د خپل فرض د ادا کولو په ځاے دا بې ایمانه په شلم د اپریل 1839ء د میکناټن په لښکر کښې شامل شو د حاجي خان په تیښته د قندهار د نورو سردارانو په زړونو کښې هم کمزورتیا پیدا شوه او د کوندل خان په کیمپ کښې یوه اړے ګړے پیدا شو نتیجه دا شوه چې د پښتنو کیمپ مات شو او کوندل دوئ واپس قندهار ته راوتښتیدل په قندهار کښې اوس ملا نسو هغوي ته لمسون شروع کړو چې د مقابلې کولو نه هیڅ فائده نشته او پکار دي چې ټول ورونه ایران ته وتښتئ. د حاجي خان د راتلو نه پس نور ډیر لوي

لوي خلق انګريزي فوځ ته راوتبنتيدل. منجمله د هغوي نه عبد المجيد خان د شاه پسند خان زوے چې د لاش ګورنر وۀ او غلام اخونزاده وو چې يو لوے ملا وۀ او د انګريزانو برخلاف ئ مذهبي نفرت په خلقو کښې پيدا کولو.

کوندل خان چې قندهار ته واپس شو نو د هغۀ مدعا دا وه چې په ښار کښې به زۀ قلابند شم او وقتاً فوقتاً به د انګريزانو مقابلې ته راوځم تر دې پورې چې د فيرنګيانو شا ته د آمدو رفت لارې بندې شي او ټول قام په مذهبي جوش باندې د دې غير قوم برخلاف راپاڅي مګر ملا نسو د لستوڼي مار وۀ شپه او ورځ به هغۀ د کوندل خان دوئ په غوږونو کښې هم دغه يوه خبره کوله چې ايران ته په تيښته کښې سود دے او پاتې کيدو کښې د ځان خطره ده د غلام اخونزاده غدارۍ نور هم د هغوي زړونه پرې ايستل. اخر ملا نسو په خپله چالاکي کښې کامياب شو او کوندل خان دوئ د قندهار نه ووتل او د هلمند په خوا خوا کښې عين تر جهيل رستم پورې لاړل او د ايران په سرحد کښې داخل شول.

شاه ايران هغوي سره د مهربانۍ سلوک وکړو او د شير بابک ښار چې د فارس او د کرمان په منځکښې پروت دے او د هغې دولس زره تومانه سالانه آمدني وه په طور د جاګير ورکړو. کوندل خان چې قندهار پريښودو نو نور ډير سرداران لکه سردار حاجي دوست محمد خان اسحاقزے حبيب الله خان سرکانے، فيض طلب خان نورزے، رمضان خان غلزے، اختر خان عليزے، سرفراز خان اسحاقزے او نور ډير خانان خپلو خپلو سورو سره د شاه شجاع په لښکر کښې شامل شول او قندهار بې ډزه بې ډوزه د انګريزانو لاس ته ورغلو.

په پنځويشتم اپريل 1839ء شاه شجاع سره د سر وليم ميکناټن د قندهار په ښار کښې داخل شو او سر جان کين د انګريزي فوځ سره په دويمه ورځ د قندهار په خوا کښې بهر خيمه زن شو. چونکې د افغانستان د خلقو په زړونو کښې د اول نه دا شک وۀ چې انګريزان د شاه شجاع په بهانه په افغانستان باندې خپله قبضه کول غواړي په دې وجه د هغوي د زړونو نه د دې خبرې د اثر لرې کولو دپاره ميکناټن او د هغۀ انګريزي مشيرانو دا فيصله وکړه چې شاه شجاع دې په قندهار کښې باقاعده طور تخت نشين شي او د تاجپوشۍ رسم دې په عام دربار کښې په لوي شان و شوکت ادا کړے شي چې د خلقو دا يقين راشي چې اصلي حکومت فيرنګيان د ځان دپاره نه بلکې د شاه شجاع دپاره اخلي. د دې دپاره اتم د مۍ تاريخ مقرر شو.

چونکې د دې رسم د ادائيګۍ دپاره باقاعده تخت موجود نۀ وۀ په دې وجه د دې رسم دپاره يوه لويه چونتره غوندې جوړه کړې شوه او د هغې دپاسه يو لويه شاميانه ودرولے شوه. دا چونتره د ښار نه بهر په يو لوي ميدان کښې وه او د هغه ځاے نه عين د ښار تر دروازې پورې اووۀ زره پنځۀ سوه انګريزي فوځ ودريدلو برائ نام بادشاه شاه شجاع په يو اعلیٰ اس

باندې سور د لارډ کين او ميکناټن سره يو ځاے د ښار نه په ډېر شان و شوکت او فوځي نمائش سره راووتلو. د ښار نه د هغهٔ د بهر راوتلو خبر عامو خلقو ته د زورِ شاهي محل نه د توپو د سلامۍ په ذريعه وشو. او څهٔ وخت چې هغه د انګريزي فوځ په خوا کښې تيريدو نو بيا د يويشتو توپو سلامي هغهٔ ته وشوه.

د دې نه پس عامه سلامي وشوه او فوځونو خپلې خپلې جنډې کوزې کړې. او څهٔ وخت چې بادشاه په تخت کښيناستو او يو سل يو توپې بيا په ډېر دهوم دهام سره خلاصې شوې. د دې رسم د پوره کولو دپاره بيا لارډ کين کمانډر انچيف او ميکناټن په حيثيت د انګريزي حکومت د سفيرانو شاه شجاع ته لکه چې څرنګ د يو نوي بادشاه د تخت نشين کيدو په وخت کښې قاعده وي د خپل حکومت د طرف نه پيشکشونه پيش کړل چې د خلقو په زړهٔ کښې دا خبره کښيني چې ګنې شاه شجاع يو خودمختار بادشاه دے او ميکناټن وغيره هغهٔ سره صرف د حکومت برطانيه د طرف نه په طور د سفيرانو ملګري دي.

بيا آرمي آف دي انډس ټول د بادشاه په مخکښې د سلامۍ دپاره تير شو او دغه شان دا نمائش د تخت نشينۍ ختم شو. موهن لعل د برنس مير منشي په خپل کتاب کښې ليکي چې دا رسم په دې دومره شانداره پيمانه باندې صرف د نمائش دپاره نهٔ وهٔ ادا شوے بلکې د هغې يو لوے غرض دا هم وهٔ چې د غلجو او د نورو پښتنو قبائلو په زړهٔ کښې د فيرنګيانو د طاقت يوه دبدبه، ويره او هيبت کښيني مګر په کوم نظر چې د قندهار د علاقې خلقو د تاجپوشۍ دې رسم ته کتلي وو د هغې په حقله سر جان کے د خپل کتاب په صفحه ۴۴۰ دا رنګ ليکي:

" But the King (Shah Shuja) had then been a fortnight at Qandahar and the curiosity of the people had subsided. There was no popular enthusiasm. The whole affairs was a painful failure."

ترجمه: "مګر تر دې وخته پورې د بادشاه (شاه شجاع) په قندهار کښې څوارلس ورځې تيرې شوې وے او د خلقو د ديدن شوق مړ شوے وهٔ (په دې تاجپوشی) په خلقو کښې هيڅ جوش د خوشحالۍ پيدا نشو بلکې دا ټوله کارروائي په ډېر دردناک رنګ کښې ناکامیابه شوه."

د دې نه پس موهن لعل د ملا نسو تعارف ميکناټن سره وکړو ملا نسو يو پيره بيا هم د خط و کتابت په ذريعه کوندل خان دوئ ته دا نصيحت وکړو چې تاسو د فيرنګيانو اطاعت قبول کړئ او لکه چې څرنګ د هغوي تجويز دے نو تاسو ټول ورونه هندوستان ته لاړ شئ نو په هغه ځاے کښې به فيرنګيان ستاسو ډېر عزت او قدر وکړي. او لويې لويې وظيفې به درله مقرر کړي مګر اوس هغوي او د اولس عامو خلقو ته دا پته لګيدلے وه چې فيرنګيانو هر چا سره چې د انعام او اکرام او جاګيرونو پنشنونو وعدې کړې وے په هغې کښې يوه هم هغوي

سر ته ونهٔ رسوله. او هر کله چې هغوي بې تکليفه او بې جنګه خپل طاقت مضبوط او مستحکم وليدلو نو هغې ټولو کسانو سره هغوي د لاپروايي او د بې اعتنايي سلوک راواخستو. چې چا سره هغوي غټې غټې وعدې او پاخهٔ پاخهٔ لوظونه کړي وو. کوندل دوئ په دې سبب د څان د حواله کولو نه انکار وکړو. فيرنګيانو د فوځ يوه دسته د ګرشک په طرف د هغوي د نيولو دپاره واستوله مګر هغه ناکامیابه واپس راغله.

د پنځويشتم اپريل نه د جون تر اخره پورې انګريزې فوځ د خلقو د اعتبار د حاصلولو او په چارچاپيره علاقه کښې د انتظام د قائمولو دپاره په قندهار کښې پاتې شول د بيلو بيلو قبيلو د سردارانو په نوم هغوي اعلانونه او خطونه د شاه شجاع د حکومت د تسليمولو دپاره وليږل او د خپلې طريقې په مطابق ئې هر چا سره د انعام او اکرام نورې نورې وعدې وکړې مګر هر چا سره چې د دې وعدو د پوره کولو وخت راغلو نو ټولو خلقو سره هغوي بې لوظي وکړه.

وړومبې ذکر شوې دے چې قندهار ته د کوندل خان د تښتيدو نه پس ډيرو سردارانو د شاه شجاع اطاعت قبول کړو په دوئ کښې حاجي دوست محمد خان يو ډير لوے درانے سردار وهٔ او اګرچې ميکناټن او شاه شجاع وړومبې ډير خطونه هغهٔ ته ليکلي وو مګر د شاه شجاع او د انګريزانو په ايمانداری او ديانتداری د هغهٔ اعتبار نهٔ وهٔ د هغهٔ دا خيال وهٔ چې فيرنګيان ما په څهٔ چل خپل کيمپ ته رابلي او بيا مې کلکتې ته ګرفتار ليږي.

چونکې حاجي دوست محمد خان د ډيرې لويې پايې سردار وهٔ.او په خپل قوم کښې د ډير اثر و رسوخ خاوند وهٔ له دې کبله د هغهٔ د را اړولو دپاره هغهٔ سره لويې لويې وعدې وشوې او پس د ډير ګفت و شنيد نه هغهٔ د عبدالوهاب خان مستوفي په ذريعه قندهار نه شاه شجاع سره راغے . حاجي خان کاکړ له د خپلو خدماتو په صله کښې بادشاه د ناصر الدوله خطاب ورکړو او په خپل وزارت کښې ئې واخستو. هر کله چې انګريزي فوځ په غزني او په کابل باندې پيشقدمي شروع کړه نو دې دواړو سردارانو يعنې حاجي دوست محمد خان او حاجي خان کاکړ ته حکم وشو چې تاسو به هم سره د خپلو ملاتړو د امير دوست محمد خان د مقابلې دپاره انګريزي فوځ سره يو ځاے ځئ. د حاجي دوست محمد خان امير دوست محمد خان سره د ديرشو کالو نه ډير خوارهٔ تعلقات پاتې شوي وو مګر باوجود د دې نه د ميکناټن او د شاه شجاع د خوشحالولو دپاره دا دواړه کسان د فيرنګيانو فوځ سره په کابل باندې د پيشقدمۍ په وخت کښې شامل شول. ولې کوم سلوک چې دې دواړو سردارانو سره فيرنګيانو وکړو د هغې تفصيل به په خپل ځاے راشي.

په کومو ورځو کښې چې شاه ايران د هرات د محاصرې نه واپس شوے وهٔ نو د حکومت برطانيه دا تجويز وهٔ چې شاه کامران سره يوه مستقله عهدنامه وکړي چې د هغې په

ذریعه شاه کامران هم د شاه شجاع په شان د انګریزانو ماتحت صرف د یو ریاست خاوند پاتې شي دغه شان د هندوستان په ټول شمال مغربي سرحد باندې فیرنګیانو دا غوښتل چې یو خودمختار حکومت هم پاتې نهٔ شي او ټول موجوده حکومتونه د هغوي د لاندې د هندوستان د نورو ملکونو په شان ریاستونه شي چې د هغوي د هندوستان مقبوضات د همیش دپاره د بیروني خطرو نه محفوظ شي.

د دې غرض دپاره هغوي کرنل سټهارټ شاه کامران او وزیر یار محمد له ولیږلو. هغه لا د دې عهدنامې په کولو کښې کامیاب شوی نهٔ وهٔ چې میکناټن د برنس نه د خلاصیدو دپاره دا تجویز پیش کړو چې برنس دې شاه کامران له په دې سفارت باندې لاړ شي د میکناټن دا منشا وه چې زهٔ شاه شجاع سره یواځې کابل ته لاړ شم. او په څهٔ شان برنس د ځان نه لرې کړم دیخوا برنس هم د خپلې ترقۍ او نوم ګټلو سخت خواهشمند وهٔ هغهٔ د دې عهدې نه انکار وکړو او اصرار ئې وکړو چې زهٔ به ضرور کابل ته د انګریزي فوځ سره ځم ځکه چې هغه د میکناټن نه پس د افغانستان د ریزیډنټۍ امیدوار وهٔ لارډ آکلینډ هغهٔ ته د قندهار ریزیډنټي هم په ښه لویه تنخوا پیش کړه مګر د هغې نه هم هغهٔ انکار وکړو او اصرار ئې وکړو چې زهٔ به ضرور کابل ته انګریزي فوځ سره ځم.

اخر د برنس په ځای میجر ټاډ هرات ته لاړو د دې غرض دپاره چې هغه دې هم د ښار ضروري فوځي استحکامات مضبوط کړي او هم دې هغه د انګریزانو د طرف نه شاه کامران سره معاهده وکړي هرکله چې انګریزانو او شاه شجاع ته دا ثابته شوه چې په قندهار کښې مونږ سره د مقابلې کولو څوک سړی پاتې نهٔ شو نو یو طرف ته هغوي او بل طرف ته بادشاه خلقو سره په خپلو خپلو وعدو پښیمان شو او هر یو ته ئې د خفګان او د ناراضګۍ قسم قسم بهانې جوړ کړې. شاه شجاع د خپلو انګریزي مشیرانو په صلاح او هدایات د سلطنت د امورو انتظام شروع کړو او د سلطنت لویې لویې عهدې ئې فیرنګیانو افسرانو ته حواله کړې. د ټکسال ټیکه هغهٔ ملا جلال له چې یو اڅکزی سوداګر وهٔ، ورکړه او هغهٔ د دې په عوض کښې دوچند روپۍ شاه شجاع له ورکړې چې کوم سردار کوندل خان په عهد حکومت کښې د ټکسال ټیکه دار هغهٔ ته ورکولې. مګر څهٔ وخت چې د کمپنۍ انګریزي روپۍ په ملک کښې ډیر په کثرت سره خورې شوې نو د ټکسال آمدني ډیره زیاته شوه ځکه چې هر چا به د کمپنۍ د روپو په عوض کښې د شاه شجاع روپۍ اخستلې نو چې څهٔ وخت نورو سوداګرانو ته د ټکسال د نفعې حال څرګند شو نو هغوي د ملا جلال د رقم په نسبت زیاتې روپۍ شاه شجاع ته وښودلې ملا جلال ته دا ټیکه شاه شجاع د فیرنګیانو په ذمه وارۍ او د هغوي په لاس ورکړې وه مګر څهٔ وخت چې هغهٔ ته ډیرې روپۍ وښودلې شوې نو هغهٔ د خپل لوظ اقرار هیڅ پروا ونهٔ کړه او د ملا جلال ټیکه ئې ماته کړه. دا خو د شاه شجاع خپل حال

وۀ اوس د فیرنګیانو خپله قصه واورئ.

ملا نسو لکه څرنګ چې وړومبې ذکر شوې دې د کوندل خان وزیر اعظم وۀ مګر فیرنګیانو دا غدار افسر په تحریري او زباني وعدو او د انعامات او اکرامات په اقرارونو باندې خان ته راواړولو او د یو لوې پنشن د ورکولو اقرار ئې هم ورسره وکړو چنانچه هم په دې طمع او لالچ دې نمک حرام ملا کوندل خان ته د ایران د تښتیدو ترغیب ورکړو. چنانچه هغه په دې مقصد کښې کامیاب هم شو. ولې هر کله چې فیرنګیان قندهار ته راورسیدل او د هغه خپلې چیتې او تحریري وعدې د صلې غوښتلو دپاره پیش کړې نو میکناټن هغۀ ته ووئیل چې کوندل خان خو د قندهار نه د دې دپاره تښتیدلے وۀ چې مونږ سره مقابله وکړي ولې هر کله چې هغۀ زمونږ زور او طاقت ولیدو او حاجي خان د هغوي نه راوتښتیدو نو هغوي ایران ته په تښتیدو مجبور شو. په دې کښې ستا هیڅ کار نۀ وۀ او له دې کبله مونږ تاته هیڅ قسم پنشن وغیره نۀ شو درکولے.

د عبدالوهاب خان نوم هم لوستونکو ته معلوم دے. علاوه د دې نه چې د هغۀ د اثر و رسوخ په وجه سردار حاجي دوست محمد خان د انګریزانو اطاعت تسلیم کړے وۀ د هغۀ نور خدمات چې کوم هغۀ د شاه شجاع او د فیرنګیانو کړي وو د ذکر قابل دي. دا سړے هم د سردار کوندل خان ملازم وۀ او هر کله چې برنس او موهن لعل میر محراب خان حاکم قلات له د دوستۍ عهدوپیمان کولو دپاره په مشن تلي وو نو سرداران قندهار دا سړے سره د یو قزلباش چې هغۀ سره ډیر خفیه او ضروري کاغذات وو قلات ته میر محراب خان له په مشن ولیږلو چې تۀ فیرنګیانو سره ملګرتیا مۀ کوه. دا خطوط هغه وو چې کوم سرداران قندهار، د روسي ایجنټ او د بلوچ سردارانو په منځ کښې تلي راغلي وو. عبدالوهاب د پوپلزے قبیلې وۀ مګر د هغۀ پلار د ډیرې مودې نه د محمدزو ملازمت اختیار کړے وۀ. دې عبدالوهاب فیرنګیانو ته سوال جواب ولیږلو چې زۀ به دې خپل ملګري قزلباش نه ټول کاغذات قبضه کړم او تاسو ته به ئې درکړم. د دې په عوض کښې فیرنګیانو هغۀ سره د یو لوې انعام وعده وکړه او ورسره ئې دا اقرار هم وکړو چې مونږ به تاته ستا خپله زړه عهده هم درکړو. یعنې مستوفي به دې کړو. د دې لوظ او اقرار نه پس عبدالوهاب سره د خپل ملګري د قلات نه قندهار ته واپس راروان شو او په لاره کښې دې بې ایمان او دهوکه باز افسر هغه خپل ملګرے راونیولو او ټول کاغذات ئې ترینه واخستل او قلات ته ئې انګریزانو له راوړل. هر کله چې انګریزان او شاه شجاع په قندهار کښې په ارام شول نو دۀ هم خپلې چیتې فیرنګیانو ته پیش کړې هغوي عبدالوهاب له د شاه شجاع د سکتر په نوم باندې خط ورکړو. شاه شجاع حسب معمول هغۀ ته په جواب کښې ووئیل چې "امر خواهد شد" یعنې حکم به وشي. هرڅومره چې عبدالوهاب د فیرنګیانو نه شاه شجاع او د شاه شجاع نه فیرنګیانو ته د انعام او

اکرام د غوښتو دپاره لاړو مګر شاه شجاع د "امر خواهد شد" نه بغیر څۀ څيز ور نۀ کړو او نۀ ئ هغۀ له څۀ ملازمت ورکړو. چنانچه عبدالوهاب په لږه موده کښې هغه ټول مال چې ورسره وۀ په خان ولګولو او چونکې ملازمت ئ هم نۀ وۀ نو بیا ئ ټول اسونه خرڅ کړل مګر د موجوده انعام او اکرام یوه پیسه هم هغۀ ته حاصله نۀ شوه. هم دغه سزا خدایے پاک د خپل قدم هر یو غدار له ورکوي او هر څوک چې خپل عزیزان او ملک په پیسو او د دنیا په لالچ د غیر قوم په لاس خرخوي نو خدایے پاک هغه هم په دین او هم په دنیا کښې په دې طریقه شرموي. فاعتبروْا یا اولی الابصار.

د شاه شجاع او د فیرنګیانو دا د اقرارونو او د وعدو خلاف ورزي د سترګو په رپ کښې د افغانستان د یو ګوټ نه تر بله ګوټه پورې په چارچاپیره علاقه کښې خوره شوه. د دې نه پس به چې هغوي هر چا سره څۀ لوظ اقرار کولو نو خلقو به هغې ته د شک په نظر کتل او باور به ئ پرې نۀ کولو.

په دې واقعاتو او حالاتو کښې انګریزي فوځ د قندهار نه په دویم د جون د غزني په طرف روان شو او د شاه شجاع یو زوے د هغه ځاے ګورنر او میجر لیچ ئ پولیټیکل ایجنټ مقرر شو. میکناټن او د هغۀ پولیټیکل ایجنټان د فوځ د روانیدو نه وړاندې د غلجو سردارانو ته لوېې لوېې چیټې د خپل دستور مطابق ولیکلے. په دې خطونو کښې د شاه شجاع د آمد او د انګریزي فوځ هغۀ سره د ملګرتیا ذکر وۀ. او هغوي ته ئ دا لیکلي وو چې کۀ چرې د انګریزانو او د شاه شجاع اطاعت تاسو تسلیم کړئ نو تاسو ته به ډیر لوے لوے جاګیرونه او انعامونه درکړې شي. دا خطونه مختلفو جرګو ته دستي ورکړې شول چې هغوي ئ بیل بیل سردار او مشر ته ورسوي. مګر د ملا نسو، د عبدالوهاب او د سردار حاجي دوست محمد خان مثالونه د هغوي په وړاندې وو. او په دې سبب د غلجو په زړونو باندې د دې خطونو او د دې وړدو وعدو او اقرارونو هیڅ اثر ونۀ شو بلکې هغې پورې ئ ډیر وخندل نو هر کله چې غلجي د انګریزي فوځ د پیشقدمی نه خبر شول نو د خپل بال بچ سره غرونو ته وتښتیدل او چې څۀ وخت به انګریزي فوځ په لاره باندې روان وۀ نو ناساپه به پرې راپریوتل او مال اسباب به ئ د هغوي نه لوټ کړو. هر څومره کۀ د هغوي مشرانو سره انګریزي افسرانو جرګې وکړې او د روپو منصبونو لالچونه ئ ورته ورکړل او لیکلې چیټې ئ ورله ورکړې خو هغوي په دې طمع کښې رانغلل ځکه چې د فیرنګیانو د وعدو هیڅ قدر پاتې شوے نۀ وۀ. پس په دې ټول مهم کښې هغوي خپل ځانونه د هغوي نه جدا وساتل.

په څلورم د جولائي فوځ او بادشاه په ډیر مشکل قلات غلزے ته ورسیدل چونکې د هوتکي او د توخي غلجو سرداران ګل محمد خان، عبدالرحمٰن او سلطان محمد خان د انګریزي فوځ په راتلو باندې د خپلو علاقو نه تښتیدلي وو د دې دپاره په پنځم جولائي باندې

فیرنگیانو د هغوي په ځاے میر عالم خان د توخي قوم مشر مقرر کړو. د قلات غلزے نه انګریزي فوځ د غزني په لوري روان شو. په غزني کښې هم فیرنګیانو د امیر دوست محمد خان په خپلو عزیزانو تربورانو کښې ډیر سرداران ځان طرف ته را اړولي وو او هم په دې سبب د دوست محمد خان په سرو کښې د شاه شجاع د حکومت تسلیمولو په باره کښې سخته بې اتفاقي پریوتې وه. د موهن لعل وړومبے هم ډیر ځل په دې کتاب کښې ذکر شوے دے. دا کشمیرے پنډت د برنس د فارسي میر منشي وۀ او څۀ وخت چې برنس د افغانستان، بلوچستان او د ایران په سیاسي سفر باندې تلے وۀ نو دا موهن لعل هم هغۀ سره همرکاب وۀ. او بیا څۀ وخت چې برنس د دوست محمد خان دربار ته لارډ آکلینډ په مشن رالیږلے وۀ نو هغه وخت هم دا موهن لعل ټوله موده هغۀ سره په کابل کښې موجود وۀ. په دې حیثیت چې فارسي دان وۀ او د برنس اعتباري ملازم او د قوم نه هندوستانے وۀ. موهن لعل د امیر دوست محمد خان اکثر رشته دارانو سره او د هغۀ د دربار لویو لویو افسرانو سره ښۀ واقفیت حاصل کړے وۀ. هم په دې وجه د دې 1839ء په لام کښې هغه ډیر زیات پولیټیکل خدمات ادا کړل.

هر کله چې انګریزي فوځ په غزني باندې پیشقدمي وکړه نو موهن لعل د دوست محمد خان ورارۀ عبدالرشید ته یو پټ خط ولیکلو چې فوراً غزنے پریږده او انګریزانو سره شامل شه. په غزني کښې حیدر خان د دوست محمد خان خپل زوے سره د کافي فوځه د انګریزانو مقابلې ته ناست وۀ. څۀ وخت چې د موهن لعل سړي هغۀ ته (عبدالرشید ته) دغه خط ورکړو او واپس راروان وۀ نو د حیدر خان سړو ګرفتار کړو او سمدستي د هغۀ په حکم قتل کړې شو. پس د عبدالرشید د لاس نه د خط ورکولو موقع ووتله. اوس دې بې ایمان سردار دا چل وکړو چې خپل یو نوکر ئې پوهه کړو چې تۀ دا ووایه چې زۀ غزا کوم او د غزا په نیت خپل سر ورکوم نو په دې بهانه باندې تۀ یو دم انګریزي کیمپ ته په تیښته لاړ شه. او زما چیټي په دې طریقه موهن لعل ته ورکړه. چنانچه د عبدالرشید دې سړي ږیره اوخریله او شنې جامې ئې واغوستې توره ئې د تیکي نه راوویسته او د خداے او د رسول نوم ئې په خلۀ واخستو او انګریزي کیمپ ته په تاخت باندې روان شو. چنانچه په دې چل سره دې سړي د عبدالرشید خط موهن لعل ته په انګریزي کیمپ کښې ورکړو.

څۀ لږې ورځې پس عبدالرشید د حیدر خان نه وتښتیدو او انګریزي فوځ سره شامل شو. میکناټن هغه بیا سر جان کین ته حواله کړو چې هغۀ ته د غزني د فوځې استحکامات موجوده حالات او د حیدر خان د فوځې قوت ټول واقعات ښکاره کړي. چنانچه کوم اطلاعات چې دې غدار سردار سر جان کین ته ورکړل هغه دومره مفید ثابت شول چې سر جان کین هغۀ ته حکم وکړو چې تۀ هر وخت میجر تهامس چیف انجنیر سره د هغۀ د فوځې

ګشت په وخت کښې شامل اوسه. هغۀ فیرنګیانو ته د نورو اطلاعاتو نه علاوه دا خبر هم ورکړو چې سردار محمد افضل خان د امیر صاحب مشر زوے د یوې لویې رسالې سره د قلعې نه بهر او غلام حیدر خان د هغۀ بل زوے د یو مضبوط فوځ سره په قلعه کښې دننه پروت دے.
په یویشتمه جولایی انګریزي فوځ غزني ته رابنکاره شو. سر جان کین خپل کیمپ د غزني د کابلی دروازې په مخکښې د دې غرض دپاره ولګولو چې د کابل نه امدادي فوځ غزني ته په راتلو کښې کامیاب نۀ شي. انګریزي فوځونه لا خپل کیمپ ته نۀ وو رسیدلي چې تیارۀ شوه. او داسې اړے ګړے پریوتو چې کۀ چرې دا وخت د محمد افضل خان رسالې د غزني د توپو د زد د لاندې په انګریزي فوځ حمله کړې وے نو هغوي ته به ئې ډیر عظیم الشان نقصان رسولے وۀ. مګر هغوي د انګریزي فوځ په نقل و حرکت باندې بالکل پوهه نۀ شول او دا خیال ئې وکړو چې فیرنګیان د غزني د اخستو نه بغیر کابل ته په مخه روان شو. او چې کابل واخلي نو بیا به د غزني د اخستو دپاره واپس راشي. پس هغوي دا تجویز خوبش کړو چې انګریزي فوځونه تر شیخ اباد پورې بې روک ټوک پریښودل پکار دي. او د هغې نه پس به بیا امیر صاحب د مخامخ نه او غلام حیدر خان او افضل خان د شاه نه په انګریزي فوځ حمله آور شي.
په دې غلط فهمی کښې ټول انګریزي فوځ صحیح سلامت د غزني د کابلی دروازې په مخامخ ډیرې واچولې. سردار محمد افضل خان او سردار غلام حیدر خان سره په غزني کښې صرف درې زره سرې د جنګ دپاره تیار وو او انګریزي فوځ قریباً اتۀ څلویښت زره وۀ.

محمد افضل خان دپاره په میدان کښې د انګریزي فوځ سره جنګ کول ناممکن وو ځکه چې د هغۀ طاقت ډیر کم وۀ او هغۀ سره دا ویره وه چې په میدان کښې به زۀ د انګریزي فوځ د لوړے والي په وجه بالکل تباه او برباد شم. له دې کبله هغۀ د غزني دننه قلا بند فوځ خپل قسمت ته پریښودو او پخپله د غزني نه کابل طرف ته روان شو. دیخوا عبدالرشید انګریزي انجنیرانو او فوځي افسرانو ته د غزني فوځي استحکاماتو د چپې چپې او د ګوټ ګوټ حال ورکړو. د دې اطلاعاتو په بنا باندې میجر تهامسن چیف انجنیر د څرمنو یو څو ګوډې د بارودو نه ډک کړل او کابلی دروازې طرف ته ئې ولګول. او په درویشتم جولائي په درې بجې د شپې د انګریزي فوځ دستې په خپل خپل مقام باندې د حملې کولو په غرض بالکل تیارې ودریدے. څۀ لږ ساعت پس د حملې کولو حکم وشو. میجر تهامسن او کپتان پیټ کابله دروازه والوځوله او انګریزي فوځ په ښار کښې وردننه شو. د دې نه پس په ښار کښې دننه ډیر زبردست او خونریز جنګ وشو. مګر انګریزي فوځ د پښتنو په مقابله کښې یو په لس زیات وۀ. په دې وجه انګریزي فوځ په هر طرف کامیاب شو. او قریباً په یوه ګینټه کښې دننه دننه ټول غزنے فتح شو. شاه شجاع سره د میکناټن، سر جان کین قلعې ته دننه

بوتلل. او سردار غلام حیدر خان سره د خپلې ټولې خیلخانې گرفتار شو. د غلام حیدر خان د گرفتارۍ نه پس هم د ښار په ځنې ځنې حصو کښې هم هغه شان پښتنو د انگریزي فوځ په ډیرې بهادرۍ سره مقابله وکړه. مگر اخر کار تر ماښامه پورې تقریباً ټول ښار فتح شو. سردار محمد افضل خان چې د غزني تسخیر کیدو خبر واوریدو نو هغهٔ د مقابلې اراده پریښوده او سم کابل ته روان شو. میکناټن د پنځو سوؤ روپو ماهوار پنشن عبدالرشید ته د هغهٔ تر ژوندانهٔ پورې مقرر کړو. مگر لا ډیره موده تیره نهٔ وه چې دا نمک حرام قوم فروش مړ شو.

کهٔ چرې عبدالرشید د موهن لعل په لمسه او ترغیب او د هغهٔ په دلالۍ فیرنگیانو له نهٔ وې راښندلې او هغهٔ انگریزانو ته د غزني د اخستو ټول ترکیب نهٔ وي ښودلې نو دا یقیني طور سره سړې وئیلې شي چې انگریزانو به په غزني باندې په دا شان اسانتیا فتح نهٔ وه موندې. لکه چې څرنگ سر جان کین بیاموندہ. حقیقت دا دې چې غزنې په دې زمانه کښې یو ښهٔ مستحکم ځاې وهٔ. د هغې د قلا دیوالونه ډیر مضبوط وو او تر څو پورې چې قلعه شکن توپو باندې په هغې گوله باري نهٔ وې شوې نو په معمولي معمولي توپو باندې د هغې دیوالونو ته هیڅ نقصان نهٔ شو رسیدې. سر جان کین دا قسم لویې لویې توپې تر قندهاره پورې رارسولې وې کوم تکلیفونه چې په لاره کښې د دې توپو په راوړو کښې هغهٔ ته پیش شول د هغې په سبب هغهٔ دا ټولې قلعه شکن توپې په قندهار کښې پریښودلې. د غزني او د قندهار تر منځه دا قسم سړک او لا رخو وه نه چې په هغې باندې دا توپې راښکلې شوې وې او په ورانو ویجاړو او کندو کپرو د هغې راښکل ناممکن وو. په دې وجه غزني ته هغهٔ صرف معمولي توپې ځان سره راواخستې. ولې په دې توپو سر جان کین هیچرې د غزني د قلا فصیل نهٔ شو ماتولې. چنانچه هم دا وجه وه چې شاه شجاع هغهٔ ته دا رائ ورکړه چې غزنې په ځاې باندې پریښودل پکار دي او شواشو په کابل باندې پیشقدمي پکار ده. هغهٔ سر جان کین ته په دې الفاظو ووئیل چې کهٔ چرې د غزني د قلعې دیوالونه مات کړې شي نو بیا خو غزنې ستاسو دې. ولې زهٔ په دې نهٔ پوهیږم چې تاسو به د هغې دیوالونه څنگه ماتوئ او قلعې ته به څنگه ننوځئ. ولې عبدالرشید هغوي ته وئیلي وو چې کهٔ چرې د ښار کابلی دروازه تاسو والوځوله نو بیا به بې تکلیفه انگریزي فوځ په قلعه کښېوردننه شي. د غزني د ښار په نورو ټولو دروازو کښې دیوالونه وهلي شوي وو. صرف کابلی دروازه په دې طریقه نهٔ وه بنده شوې. پس د عبدالرشید په دې تجویز باندې د عمل کولو فیصله وشوه. د کابلی دروازې په الوځولو سره انگریزي فوځ کامیاب شو.

سر جان کین د موهن لعل د دې خدمت په حقله چې هغهٔ عبدالرشید په غدار کولو کښې کامیاب شو داسې په خپل کتاب کښې لیکي:

" Abdur Rashid Khan was the nephew of Dost Muhammad when the commercial mission was in Afghanistan, Mohan Lal had made the acquaintance of this man. The Munshi seems to have been endowed with genius for traitor-making, the lustre of which remained undimmed to the very end of the war."

ترجمه : "عبدالرشید خان د دوست محمد خان و رارهٔ وهٔ په کومو ورځو کښې چې په تجارتي مشن په افغانستان کښې وهٔ نو موهن لعل هغهٔ سره واقفیت حاصل کړے وهٔ. معلومیږي چې دې منشي ته د غدارانو په جوړولو کښې خاص مهارت حاصل وهٔ. او د دې مهارت په چمک کښې د جنګ تر اختتام پورې څهٔ کمے رانغلو."

د غزني د فتح نه پس چې لا انګریزي فوځونه لا هم په هغه مقام دیره وو چې نواب جبار خان د امیر دوست محمد خان ناسکه وررور وهٔ د امیر دوست محمد خان د طرف نه فیرنګیانو ته یو پیغام راوړو. نواب جبار خان د فیرنګیانو ډیر دوست مشهور وهٔ. او اکثر به ئې په هغوي کښې لویولویو افسرانو سره خط و کتابت ساتلو چونکې هغه همیش د هغې ټولو انګریزي افسرانو چې څوک یو وخت لا بل وخت کابل ته راغلي وو ډیر خدمتونه کړي وو. د هغوي ئې ډیر قدر او عزت کړے وهٔ. بلکې بسا اوقات ئې د خپل وررور امیر دوست محمد خان په نسبت انګریزانو سره زیاتي راز باز ساتلے وهٔ. په دې سبب د هغهٔ دا یقین وهٔ چې زهٔ په کوم غرض انګریزانو له راغلے یم په هغې کښې به زهٔ ضرور کامیاب شم. او هم دغه وجه ده چې امیر دوست محمد خان هم نواب جبار خان د دې کار دپاره خوښ کړے وهٔ. هغهٔ د خپل آمد اطلاع انګریزي کیمپ ته د ورومبے نه ورکړے وه. پس برنس موهن لعل د انګریزي کیمپ نه قریباً پنځهٔ میله لرې د هغهٔ استقبال له واستولو. او هر کله چې هغه انګریزي پکټهونو ته رانزدې شو نو برنس پخپله د هغهٔ مخې له لاړو راتلو سره هغهٔ میکناټن له د ملاقات دپاره ورغلو. او هغهٔ ته ئې خپله مدعا ښکاره کړه او ورته ئې ووې چې امیر دوست محمد خان د شاه شجاع اطاعت منلو ته تیار دے. خو په دې شرط چې هغهٔ له د شاه شجاع د وزارت عهده ورکړې شي. ځکه چې د فتح خان د وراثت په حیثیت هغه د دې عهدې حقدار دے. میکناټن بغیر د بحث نه دا تجویز نامنظور کړو او فوراً ئې په جواب کښې نواب جبار خان ته ووئیل چې د انګریزانو دا منشا ده چې دوست محمد خان دې هندوستان ته په حیثیت د شاهي نظربند واستولے شي. مګر دا خبره نواب جبار خان ته سخته ناجائزه ښکاره شوه. او هغهٔ د دې خبرې د منلو نه انکار وکړو. هر کله چې د نواب جبار خان دا خبره نامنظوره شوه نو بیا هغهٔ د میکناټن نه یو بل سوال وکړو. د غلام حیدر خان ښځه د نواب جبار خان خپله وریره ده او هر کله چې غلام حیدر خان ګرفتار شو نو فیرنګیانو دا ښځه هم ګرفتاره کړه او د هغې دجلاوطن کولو فیصله ئې هم وکړه. نواب جبار خان د فیرنګیانو نه دا رعایت غوښتے وهٔ چې اخر د غلام حیدر خان بي بي خو ښځه ده هغې سره دا سختي او ناروا سلوک کول پکار نهٔ

دي. هغه ازاده کړئ او ماسره ئ تللو ته پرېږدئ. مګر فيرنګيانو د هغهٔ دا سوال هم مسترد کړو. هر څومره کهٔ نواب جبار خان فيرنګيانو ته ووئيل چې د ټولو پښتنو دا يقين دے چې زهٔ د فيرنګيانو دوست يم او هم زهٔ د خپل ورور د تباهئ باعث يم. نو کهٔ چرې زما په خلهٔ تاسو هغهٔ له د وزارت عهده نهٔ ورکوئ نو کم نه کم دومره خو وکړئ چې زما وريره ماته پرېږدئ. چې زما سترګې په خپلو خلقو کښې وچتې شي. مګر د دې يوې خبرې هم په ميکناټن او د هغهٔ په ملګرو اثر ونهٔ شو. جبار خان د دې نه پس د انګريزي کيمپ نه په رخصتيدو کښې وهٔ چې اخري سوال ئ دا وکړو چې ما له غلام حيدر خان سره د ملاقات اجازت راکړئ. دا وخت غلام حيدر خان د موهن لعل په خيمه کښې د برنس د نګرانئ لاندې نظربند وهٔ. دا سوال په اخر کښې د هغهٔ ومنلے شو. مختلف پوليټيکل او فوځي افسرانو نه د منظورئ په اخستلو دومره وخت تير شو چې د نواب جبار خان دا يقين وشو چې انګريزان ما هسې غولوي. د دې ټولو خبرو د نهٔ منلو په سبب د جبار خان په زړهٔ دومره خراب اثر وشو چې کوم نيک سلوک او ښهٔ د دوستئ تعلقات چې دهٔ د فيرنګيانو سره ساتلي وو په هغې هغه پښيمان شو.

نواب جبار خان سره په دوران ګفتګو کښې چې يو ځل د شاه شجاع ذکر راغے نو انګريزانو په ډير ادب سره د هغهٔ نوم واخستو په دې جبار خان مسکے شو او ميکناټن ته ئ ووې چې کهٔ چرې شاه شجاع رښتيا بادشاه دے او صرف د خپل پلار نيکهٔ په تاج و تخت پسې راغلے دے نو ستاسو د دې دومره لوئے فوځ او د نوم څهٔ غرض او څهٔ مطلب دے. تاسو هغه د خپل مال او فوځونو په زور خپل ملک ته راوستو، او د هغهٔ سره مو ښه دوستي تر دې وخته پورې وپالله. اوس هغه مونږ پښښتنو ته پرېږدئ نو بيا به وليدے شي چې هغه په مونږ باندې څرنګ حکومت کوي.

غرض دا چې نواب جبار خان د فيرنګيانو د دې بدسلوکي په سبب سخت دلګير او خفه شو. او په نهٔ ويشتمه جولايئ د انګريزي کيمپ نه رخصت شو. د رخصتيدو نه وړومبے هغه شاه شجاع سره ملاقات وکړو او شاه شجاع او ميکناټن هغهٔ ته د وزارت عهده پيش کړه. مګر هغهٔ انکار وکړو. او په جواب کښې ئ ووې چې څهٔ زما د ورور نصيب قسمت وي هغه به زما هم وي. دا خوږې وعدې او اقرارونه ما نهٔ شي خوشحالولے. د رخصتيدو په وخت کښې موهن لعل د برنس په حکم تر انګريزي پکتهونو پورې جلب وکړو. موهن لعل وائي چې څهٔ وخت مونږ د ميکناټن او د کمانډر انچيف د کيمپ په منځکښې په لاره روان وو نو مونږ د يوې ښځې کريکې واوريدے چې هغه د غزني د قلعې نه ګرفتاره شوې وه. نواب جبار خان ماته سترګې راواړولے او وې وئيل چې فيرنګيانو پرون ماته لافې کړې وے چې هيچا هم د پښتنو ښځو سره بدسلوکي نهٔ ده کړې. ما نواب ته ووئيل چې دا د کوم سړي د خيمې نه دا

کریکې راځي د هغې نه دا شان معلومیږي چې هغه به هغهٔ ضرور چرته د خواو شا کلي نه راوستې وي. کهٔ نهٔ وي د قلعې ښځو سره ډیر ښهٔ د شرافت سلوک شوے دے. بیا زهٔ سمدستي د هغهٔ په مخکښې هغې خیمې ته لاړم نو ما ولیدل چې د سارجنټ یو بهشتي هغه په زور راوستې ده. چنانچه هغه ښځه ما د هغهٔ نه خلاصه کړه او بهشتي مې موقوف کړو. د دې ټولو واقعاتو ډیر خراب اثر د جبار خان په زړهٔ باندې وشو. او د هغهٔ د سترګو په وړاندې د افغانستان د ملک د غلامۍ او د پښتنو د قام د غیرو خلقو دلاسه د بې عزتۍ یوه نقشه راښکلے شوه. هر کله چې هغهٔ کابل ته راورسیدو نو د هغهٔ ټوله رویه د فیرنګیانو متعلق بدله وه. د ډیر عمر نه د دوست محمد خان په جبار خان دا شک وهٔ چې هغهٔ فیرنګیانو سره زما برخلاف ساز باز ساتلے دے. او د دوست محمد خان په دې بدګمانۍ کښې حقیقت هم وهٔ. ولې کوم وخت چې جبار خان د غزنې نه راواپس شو نو هغهٔ په خلقو کښې د فیرنګیانو برخلاف د نفرت او مخالفت د جذباتو د پیدا کولو دپاره سخت جدوجهد شروع کړو. او ورته ئې ووې چې کهٔ چرې د غیر قوم فوځونه یو ځل په کابل کښې داخل شول نو هغوي به تاسو او ستاسو ښځې وشرموي. او د وطن نه به مو خارج کړي. هغهٔ د کابل سردارانو ته دا هم ووئیل چې د فیرنګیانو پولیټیکل افسران هر چا ته شنهٔ باغونه ښیي. او د ښهٔ فصل وعدې ورسره کوي مګر د ریبلو په وخت کښې هغوي سرې له د درخت حنظل یعنې مرغونے بوټے په لاس کښې ورکوي چې په شکل کښې خو شین او ښکلے ښکاري مګر میوه پکښې نهٔ وي دا خبره هم د ذکر قابله ده چې د غزني د فتح نه یوه ورځ وړومبے په دویشتم جولائي شاه شجاع قریباً پنځوس تنه سړي چې په جنګ کښې قیدیان شوي وو سخت په بې دردۍ او وحشیانه طریقه باندې عین د انګریزي کیمپ په مخکښې حلال کړل.

د غزني د تسخیر نه څلیریشت ګینټې پس دوست محمد خان ته د انګریزانو د فتح خبر وشو. هغهٔ سمدستي خپل د دربار سرداران راجمع کړل او ورته ئې ووې چې زما ټول زاړهٔ ملګري او دوستان یو په یو زما نه د انګریزانو د رشوتونو په سبب د مصیبت په وخت بیل شو اوس تاسو کښې هر څوک چې زما په تکلیفونو کښې ماسره شاملیدل نهٔ غواړي هغه دې په رضا صلاح زمونږ د دې جرګې نه وځي. چې مونږ ته خپل اصلي طاقت او زور معلوم شي. ټولو سردارانو په دې جرګه کښې د خپلې وفادارۍ اقرار هغهٔ سره وکړو. ولې چې څهٔ وخت نواب جبار خان د انګریزي کیمپ نه په خپل مقصد کښې ناکام راواپس شو نو د دوست محمد خان په سردارانو کښې بیا سر دوباره ښکاره په ښکاره د کمزورۍ او د بزدلۍ نښې ښکاره شوې. سره د دې غدارۍ دوست محمد خان په ډیرې حوصلې او دلجمعۍ د جنګ دپاره خپل فوځ له ترتیب ورکړو. او د ارغنده مقام ته ورکوز شو. په هغه ځاے کښې هغهٔ خپل فوځونه په خپل خپل ځاے ودرول او توپې ئې په جنګي ترتیب کښې ولګولے. د

ارغنده نه پس بیا د هغهٔ د میدان په مقام فیرنګیانو سره د مقابلې کولو نیت وهٔ مګر ارغنده ته د رارسیدلو نه لږ ساعت پس هغهٔ ته معلومه شوه چې په فوځ کښې ما سره د وفادارۍ هغه جذبات بالکل مړهٔ شوي دي چې د کومو هغوي په کابل کښې اظهار کړے وهٔ. قزلباش ټول په جمع تیښتې ته تیار ناست وو او نورو لویو لویو سردارانو هم روپۍ اخستې وې. چارچاپیره د هغهٔ نه د دهوکې، فریب او غدارۍ نه سیوا بل هیڅوک هم د هغهٔ ملګري نهٔ وو. په زړهٔ کښې دوست محمد خان د کابل نه د راوتو په وخت دا قصد کړے وهٔ چې یو ځل به زهٔ فیرنګیانو ته په میدان جنګ کښې د خپلې بهادرۍ تماشې ښیم. مګر د هغهٔ دا ارمان هم په زړهٔ کښې پاتې شو. ځکه چې د هغهٔ د فوځ لویه حصه د هغهٔ نه اوړیدلے وه. او د فیرنګیانو په روپو ئې خپل ایمان خرڅ کړے وهٔ. هرکله چې دوست محمد خان هر طرف ته بیوفائي بزدلي او ناکامیابي ولیده نو اخري ځل ئې په خپل فوځ کښې د قامولۍ د جذباتو مشتعل کولو کوشش وکړو ټول فوځ ئې راجمع کړو او قرآن مجید په لاس په اسپه سور هغوي ته رامخکښې شو او د خدائے او د رسول قسم ئې ورته واچولو چې په دې موقع ځان سوچه مسلمانان او پښتانهٔ ثابت کړئ. مهٔ په خپل ځان په قوم بدناموسي لګوئ او مهٔ خپل دین سپوروئ او مهٔ د داسې سړي ملګري کیږئ چې هغهٔ دا ملک د کفارو او زندیقانو نه ډک کړے دے. بیا ئې د ډیر سوز یو تقریر وکړو چې د خدائے او د رسول ﷺ په نوم د نرانو او بهادرانو خلقو په شان یو ځل په میدان کښې جنګ وکړئ. په ایماندارۍ زما د جنډې لاندې او د خپل قام په ننګ راجمع شئ او لا فیرنګیان د دې ملک نه وباسئ او لا په دې پاک مقصد او د ازادۍ په جنګ کښې ځانونه قربان کړئ. پس د هغې نه هغهٔ د فوځ سپاهیانو او افسرانو ته مخ واړولو او خپل ذاتي حقوق ئې ور په یاد کړل او ورته ئې ووئیل :

"تاسو دیارلس کاله زما نمک خوړلے دے کهٔ چرې تاسو اوس ځان له یو نوے مالک خوښوئ لکه چې څرنګ تاسو نیت کړے دے نو زما د هغې خدماتو او مهربانو چې کومې ما تاسو سره دومره موده کړې دي ماله کم ا زکم دومره بدل راکړئ چې هر کله زهٔ د قام په ننګ او په عزت په میدان جنګ کښې سر ورکوم نو تاسو دې د فتح خان د ورور په خوا کښې په هغه کړۍ ولاړ اوسئ څهٔ وخت چې د دې فیرنګیانو سپو په رساله باندې خپله اخري حمله کوي. او هر کله چې هغه په دې اخري حمله کښې ساه ورکړي نو بیا بیشکه شاه شجاع سره خپلې خبرې اترې وکړئ."

د دوست محمد خان د دې فصیح او بلیغ تقریر هیڅ اثر د فوځ په افسرانو ونهٔ شو. د انګریزانو پیسو د هغوي زړونه ناپاک کړي وو. هغهٔ ته صفا ښکاره شوه چې زما په فوځ کښې یو ایماندار سړے نشته. او ټول خلق د بزدلۍ او د طمع په وجه زما پریښودو ته تیار ناست دي. د دې بدقسمتۍ هغهٔ سره هیڅ علاج نهٔ وهٔ. هغه پوهه شو چې په داسې فوځ باندې

اعتبار کول او د هغوي امداد ته اسره کول خپل ځان د همیش دپاره ور کول دي. بیا هغهٔ په ډیره حوصله قزلباشو ته چې چا سره د هغهٔ خپلوي وه مخ کړو او ټول ئې د ځان نه رخصت کړل. او د هغې نه پس ئې هغې ټولو سردارانو له اجازت ور کړو چې د شاه شجاع سره د ملګرتیا خواهش ئې وهٔ. بیا هغه د یو څو کسو سپاهیانو او د ایماندارو ملګرو سره د میدان جنګ نه ووتو او ټولې توپې او سامان جنګ ئې په ځاے پریښودو او پخپله ئې د بامیان لار واخسته او روان شو.

" This was the crisis of his fate. He looked arround him and saw only perfidy on the right hand and the left. Equal to the occasion, but basely deserted, what could the Amir do? Never had the nobility of his nature shone forth were truely and more bristerously. In the hour of adversity, when all were false, he was true to his manhood, into the midst of his own perfidous troops he rode, with the Quran in his hand; and then called upon his followers, in the name of God and the Prophet not to forget that they were true Muhammadans-- not disgrace their names and to dishonour their religion, by rushing into the arms of one who had filled the country with infidels and blasphemers. He besought them to make one stand, like brave men and the believers; to rally round the standard of the commander of the faithful to beat back the invading Feringhees, or die in the glorious attempt. He then remained them of his own claims on their fidelity. "You have eaten my Salt" he said "these thirteen years. If as it too plain, you are resolved to seek a new master, grant me but one favour in requital for that long period of maintenance and kindness- enable me to die with honour. Stand by the brother of Fateh Khan, whilst he executes one last charge against the Cavalry of these Feringhee dogs; in that onset he will fall; then go and make your own term with Shah Shuja.

(Havelock)

The noble spirit stirring appeal was vainly uttered; few responded to it. There was scarcely a true heart left with despairing eye he looked around upon his recreant followers. He saw that there was no hope of winning them back to their old allegiance, he felt that he was surrounded by traitors and cowards, who were willing to abandon him to his fate. It was idle to struggle against his destiny. The first bitter pang was over; he resumed his serenity of demeanour, and addressing himself to the Qazalbashs, formally gave them their discharge. He then dismissed all who were inclined to purchase safety by tendering allegiance to the Shah; and with a small handful of following leaving his guns still in position, turned his horse's head towards the region of the Hindukush."

د غزني د فتح کیدو نه یوه ورځ پس حاجي خان کاکړ او حاجي دوست محمد خان او نور دراني سرداران چې د خپلو خپلو سرو سره انګریزي فوځ پسې وروستو وروستو راروان وو په انګریزي کیمپ کښې شامل شول. د انګریزي فوځ او د نور پولیټیکل افسرانو

د حاجي خان کاکړ او د حاجي دوست محمد خان په ورروستو ورروستو راتلو باندې شک پیدا شو او اوس هغوي د دې دواړو سردارانو د گرفتارولو دپاره څۀ بهانه لټوله مګر فیرنګیانو دا خپله اراده ډیره خفیه وساتله. او په ظاهره ئې خپلې خبرې اترې او آمدورفت هغوي سره بدستور خوشګوار وساتلو.

په دیرشم جولائي انګریزي فوځ کابل طرف ته خپله پیشقدمي بیا راواخسته او شاه شجاع د هغوي نه لږ وړاندې د بمبۍ فوځ سره شیخ اباد طرف ته روان شو. په دریم د اګست په درې بجې د شپې میکناټن، برنس او نورو پولیټیکل افسرانو ته دا خبر راورسیدو چې دوست محمد خان بامیان طرف ته فرار شو او خپله توپخانه سازوسامان ئې د میدان په مقام پریښودو. سر جان کین او میکناټن اتۀ سوه سوارۀ او پیاده د کرنل آؤټرم او کپتان لارنس وغیره د لاندې د هغۀ د ګرفتارولو دپاره ولیږل. حاجي خان کاکړ هم فیرنګیانو دې ټولي سره ملګرے کړو. څۀ وخت چې حاجي خان کاکړ او کرنل آؤټرم د شیخ اباد نه د دوست محمد خان په ګرفتارۍ پسې روان شو نو دغه وخت امیر صاحب سره د نائب ذوالفقار او نواب جبار خان او سره د خپل بال بچ د میدان نه درې پړاوه لرې رسیدلي وو. په یویشتم اګست د انګریزي تعاقب کونکي فوځ او د امیر صاحب دوئ په منځکښې صرف یو پړاؤ لار پاتې وه په دې دوست محمد خان په زړۀ کښې ډیر ویریدو. محمد اکبر خان ناجوړه په کټ کښې پروت وۀ هغه ئې په ډولۍ کښې واچولو او پخپله ئې یو څو تنو ملګرو سره په ډیر شتاب د بخارا علاقې ته مخه وکړه. د کور زنانه ئې نواب جبار خان ته په حواله کړې او هغۀ ته ئې هدایت وکړو چې ما پسې ورو ورو ترکستان ته راورسه.

اخر کرنل آؤټرم هم بامیان ته ورسیدو مګر د هغۀ د رسیدو نه ډیر وړومبے امیر صاحب د بامیان نه وتے وۀ امیر صاحب د یو څو ورځو شواشو مزل نه پس قلعه سرسنګ ته ځان ورسولو چې لا هم هغه شان د هغۀ د سړو په قبضه کښې وه او په دې طریقه هغۀ ځان د فیرنګیانو او د حاجي خان کاکړ د تعاقب نه وویستو. کنرل آؤټرم چې په خپل مقصد کښې ناکام شو نو هغۀ په سرکاري رپورټ کښې د امیر صاحب په کامیابۍ سره د خلاصیدو وجه دا بیان کړه چې امیر صاحب له د انګریزي تعاقب کونکي ټولي د نقل و حرکت خبرونه حاجي خان کاکړ ورکړې وو. او هم دغه د هغۀ د خلاصیدو اصلي سبب شوے دے. چنانچه څۀ وخت چې کرنل آوټرم د بامیان نه واپس راغلو نو فیرنګیانو په دې جرم کښې حاجي خان کاکړ ناصر الدوله ګرفتار کړو او هندوستان ته ئې جلاوطن کړو.

چونکې حاجي خان یو ډیر لوے سړے وۀ او د ټولو نه وړومبے هغۀ د محمدزو جنبه د شاه شجاع او د فیرنګیانو په خاطر پریښې وه او عین په میدان جنګ کښې د کوندل خان د لښکر نه انګریزي فوځ ته راتښتیدلے وۀ او د دې نه علاوه هغۀ په لاره چې څۀ وخت انګریزي

فوځ په غزني پیش قدمي کوله د قام خلقو سره د فیرنګیانو او د شاه شجاع دپاره ډیرې جرګې کړې وې. او ډیر قومونه او قبیلې ئ د فیرنګیانو او د شاه شجاع ډلې ته را اړولې وې په دې وجه د هغهٔ ګرفتارۍ د قبائلو په لویو لویو سردارانو کښې یو تشویش او ورهم پیدا کړو. ځکه چې د هغوي نه خو د قامولې اصلي واقعات پټیدے نهٔ شو. او هغوي ته دا معلومه وه چې دوست محمد خان ته د پټ خبر ورکولو الزام د حاجي خان برخلاف بالکل غلط دے. له دې کبله د قام هر یو سړي سره خپل غم پیدا شو. چې هم په دې طریقه به فیرنګیان یو یو خان او سردار نیسي او بیا به ئ په یوه لا په بله بهانه هندوستان ته جلاوطن کوي. چنانچه د دې خبر په خوریدو سره عزیز خان د مشرقي غلجو سردار سمدستي د کابل نه وتښتیدو او یار محمد خان وزیر هرات میجر ټاډ سفیر انګریزي ته د حاجي خان د ګرفتارۍ متعلق ووئیل چې تاسو بې ایمانه سپي یئ.

( And Yar Muhammad Khan the Wazir of Hirat (as it will observed by the official extract) called us the Faithless dogs in the presence of Major Todd, the British envoy, alluding to the case of Haji Khan (Mohan Lal's life of Amir Dost Mohammad Khan, vol II P-303)

انګریزي فوځ چې شیخ اباد ته راورسیدو نو خان شیرین خان د قزلباشو سردار او نور ډیر سرداران د خپلو خپلو سړو سره د شاه شجاع او میکناټن استقبال له راغلل. میکناټن او بادشاه د شیرین خان ډیر قدر عزت وکړو او هغه ئ د ټول ایراني قبیلې سردار اعلیٰ مقرر کړو. د دې نه پس انګریزي فوځ د میدان مقام ته روان شو. په هغه ځاے کښې هغوي د دوست محمد خان نه په پاتې شوو توپو، میخزینونو او په نور سامان جنګ باندې قبضه وکړه. بیا بادشاه او میکناټن او نور انګریزي لښکر د کابل لار واخسته. په هر پړاو باندې به درانې سردارانو د خپلو سړو سره د شاه شجاع او میکناټن سلام له راتلل. او ځان سره به ئ د میوو لویې لویې ټوکرۍ، واوړې او نور د عیش سامانونه په طور د پیشکش راوړل. د دومره طویل او مشکل سفر نه پس د ګرمۍ په موسم کښې د واوړو کثرت او د میوو افراط د انګریزي افسرانو دپاره یو ډیر د لطف سامان وهٔ او ښهٔ په مره ګیډه ئ د هغې نه فائده وچته کړه. په اووم اګست 1839ء شاه شجاع د دیرشو کالو د جلاوطنۍ نه پس د انګریزي فوځ په زور د خپل قام د مرضۍ نه خلاف بیا کابل ته رادننه شو.

مونږ تر دې وخته د انګریزانو د اصلي فوځ چې د آرمي آف انډس په نوم مشهور وهٔ قصه بیان کړه. مګر د دې فوځ نه علاوه چې پکښې قریباً اتهٔ ویشت زره صرف د جنګ ځوانان وو انګریزانو د دوست محمد خان په مکمل طریقه د تباه کولو دپاره درې طرف ته په هغهٔ باندې د فوځ کشۍ تجویزونه او تیارۍ کړې وې. د دې نه علاوه د هغوي پولیټیکل افسرانو د رشوتونو او د انعاماتو او اکراماتو د طمع دومره لوے جال د هغهٔ په اراکین سلطنت

او د قام په مشرانو او د هغهٔ د فوځ په سردارانو غوږولے وهٔ چې د هغهٔ په خپل یو ملګري په یو مشر او په یو سردار هم اعتبار نهٔ وهٔ پاتې شوے. د سهیل د طرف نه په هغهٔ باندې د قندهار او د غزني د تسخیر نه پس د فیرنګیانو یو عظیم الشان منظم او باقاعده فوځ په کابل راروان وهٔ. د مشرق نه شهزاده تیمور د شاه شجاع مشرے زوي د سکهانو امدادي فوځ سره چې په شمار کښې قریباً لس زره سوارهٔ او پیاده وو. سر کلاډ ویډ پولیټیکل ایجنټ لدهیانې سره د پنجاب خیبر په لاره جلال اباد ته راروان وو او د قطب د طرف نه فیرنګیانو هغهٔ ته د خپل کوهستان رعایا بغاوت ته راوچت کړے وو.

لکه څهٔ رنګ شاه شجاع سره میکناټن د انګریزانو د طرف نه مقرر شوے وهٔ دغه شان سر کلاډویډ تیمور سره مقرر شوے وهٔ او ټول فوځې او پولیټیکل اختیارات د سر کلاډویډ په حواله شوي وو. لکه چې څرنګ شاه شجاع بې واکه وهٔ دغه شان د شهزاده تیمور حیثیت صرف د یو بې اختیاره بت وهٔ. لکه چې وړومبے ذکر شوے دے رنجیت سنګهه په خپل ملک کښې انګریزي فوځ تللو ته نهٔ پریښودو نو هغه د اتحاد ثلاثه د شرطونو مطابق خپل امدادي فوځ د شهزاده تیمور په مرسته ولیږلو. د لدهیانې نه شهزاده تیمور د روانیدو نه وړومبے فیرنګیانو مسټر لارډ پیښور ته په حیثیت د پولیټیکل ایجنټ د دې غرض دپاره واستولو چې د چارچاپیره علاقې پښتانهٔ د شاه شجاع په ډله کښې شامل کړي. او د یوسفزو، د خیبر د افریدو، شنوارو، ختکو او د باجوړو تعلقات فیرنګیانو سره په روپو مستحکم کړي. چنانچه هغهٔ ډیره موده په ختکو، باجوړو، یوسفزو او افریدو کښې کار وکړو او د علاقې پښتنو ته ئې د سر کلاډویډ او د شهزاده تیمور په کابل باندې د پیشقدمۍ خبر ورکړو او د هغوي آمد ته ئې تیار کړل. هغهٔ ته قریباً د یو لک روپو د خرڅ اختیار ورکړے شوے وهٔ. مسټر لارډ خپل کارکنان او ایجنټان قندوز او خلم ته هم د هغې طرف د خلقو د دوست محمد خان برخلاف د پاڅولو دپاره ولیږل. څهٔ وخت چې سر کلاډویډ او شهزاده تیمور اټک ته راورسیدل نو سر کلاډویډ لفټیننټ میکسن کوهاټ ته ولیږلو چې هغه د کوهاټ نه د افغانستان د هغې طرف د قبیلو مشرانو سره خط و کتابت وکړي. او د شاه شجاع په طرف د هغوي مرسته او امداد حاصل کړي. میکسن ته دا هدایت هم وشو چې د دوست محمد خان د فوځونو په دوؤ حصو کښې د تقسیمولو دپاره تهٔ څلور پنځهٔ سوه پیاده د ټوپکو خاوندان او دوه دوه نیم سوه سوارهٔ برتي کړه د دې غرض دپاره هغهٔ له پنځوس زره روپۍ ورکړې شوے.

هر کله چې ویډ او شهزاده تیمور پیښور ته راورسیدل نو عام طور د علاقې او د چارچاپیره پښتنو په قبائلو کښې دا چرچه شوه چې شاه شجاع او د هغهٔ زوے تیمور د فیرنګیانو په لاس کښې ګوډۍ ګاڼې دي او هغوي ئې صرف د دې دپاره ځان سره راوستي دي چې پښتانهٔ چرته په انګریزانو باندې د غزا اعلان ونهٔ کړي. د هغوي په زړهٔ کښې دا خبره

کښېناسته چې هر کله افغانستان واخستې شي او فيرنګيان په ټول ملک باندې قبضه وکړي او خپل فوځونه په خپل خپل ځاے واچوي نو هغوي به شاه شجاع او تيمور واپس لدهيانې ته ليږي او د ملک حکومت به په دې چل هم د فيرنګيانو په لاس کښې پاتې شي.

دا خبره خو د هغوي په ذهن کښې بالکل نۀ راتله چې ديرش کاله پس فيرنګيان څرنګ ناساپه راويښ شول چې د کابل په تخت باندې هغوي د دوست محمد خان په ځاے د شاه شجاع د کښېنولو په خاطر دومره خرڅونه برداشت کوي او د دومره لرې ځايونو نه په دا شان تکليف خپل فوځونه راولي بالخصوص هر کله چې هغوي په خپلو سترګو وليدل چې شهزاده تيمور نۀ خو ځان له په خپل اختيار جرګه کولے شي او نۀ چا سره د انعام اکرام يا د جاګير پنشن اقرار کولے شي نۀ په خپل اختيار هغه چا له څۀ پيسې ورکولے شي بلکې په هر کار کښې هغه د سر کلاډويډ او د هغۀ د پوليټيکل افسرانو په خلې پسې ځي. نو د هغوي ګمان او شک د يقين پايې ته ورسيدو او د فيرنګيانو په دې مصنوعي او نمائشي خبرو پورې به ئې ټوقې او مسخرې کولے چې مونږ خو صرف د شاه شجاع او د هغۀ د خاندان په تخت باندې د کښېنولو دپاره دا دومره تکليف په ځان وچتولو او د هغۀ نور پوليټيکل افسران د دې رائې نه ناخبره نۀ وو لـه دې کبله هغوي د دې اثر د ورکولو دپاره دا تجويز وکړو چې تيمور دې په خپله يو عام دربار وکړي چې په هغې کښې د عامو خلقو په وړاندې هغه خپلو سردارانو افسرانو او نور د قبائلو مشرانو له په خپل لاس خلعتونه ورکړې. چنانچه په نهۀ ويشتم مارچ يو عام دربار په پيښور کښې منعقد شو چې په هغې کښې د قبيلو صرف هغه مشران چې مسټر لارډ په روپو ځان ته را اړولي وو او هغه دراني سرداران چې د دوست محمد خان نه د ذاتي رنجشونو په سبب ناراض وو او يو څو افريدي شامل شول. د هغوي نه علاوه په پيښور کښې د سکهـ حکومت يو څو افسران لکه شام سنګهـ اټارې والا او نور سول او فوځي افسران لکه جنرل ابوطبيله دې دربار ته د شهزاده په مخکښې پيش شول هم په دغه موقع شهزاده محمد هاشم سدوزي چې د شاه شجاع ميرنے وررور او د ډيرې مودې نه په پيښور کښې د سکهانو وظيفه خور وۀ سره د خپلو دريو زامنو او د شهزاده جمهور د خپل وراره دربار ته راغے.

شهزاده تيمور په يو څلور کنجه ګدی باندې چې کمخواب پرې غوړيدلي وو ناست وۀ د هغۀ د ګدی نه ښکته په لاره باندې ښکلي کشميري شالونه غوړيدلي وو او درې غټ بالښتونه چې په هغې باندې ريښيمي غلافونه ختلي وو په ګدی باندې پراتۀ وو او په هغې باندې شهزاده ډډه لګولے وه. د ګدی دواړو طرفو ته کرسی اچولے شوے وے او په هغې باندې انګريزي افسران يو خوا بل خوا ناست وو. د شهزاده په مخکښې زوړ وزير ملا شکور د کمخواب جامې او د سرو زرو هارونه اچولي ولاړ وۀ او د هغوي نه وروستو ښي او ګس طرف ته دوه نوکران ولاړ وو بيا دوه فرانسيسي جرنيلان په ډير شان او رعب تيمور ته پيش

کړے شو او پس د هغې نه لفټیننټ بار سره د دوؤ انګریزي افسرانو هغهٔ ته سلامي وکړه اخر یو څو نوکرانو خلعتونه راوړل. چې په هغې کښې چغې، شالونه او د امریکې ټوپکونه وو بیا هغه تیمور په خپل لاس په حاضرینو کښې د خپلې خپلې درجې مطابق تقسیم کړل. شهزاده تیمور اګر کۀ د شاه شجاع زوے وۀ مګر چونکې اکثر عمر ئې په هندوستان کښې په غیر معروف حالت کښې تیر کړے وۀ او د دربار دې قسم رسمونو نه بالکل ناواقفه وۀ په دې سبب په دې ټوله معامله کښې هغه په ډیر تکلیف او تنګ ناست وۀ.

د دربار نه علاوه د سر کلارډ ویډ او د تیمور د طرف نه پرله پسې څو څو اعلانونه د دې مضمون تقسیم شول چې د افغانستان د فتحې نه پس به شاه شجاع د ټول ملک واحد مالک وي او حکومت برطانیه به د هغهٔ په معاملات کښې هیڅ دخل نۀ ورکوي او د سرکار انګریزي لویه مدعا د دې جنګ نه دا ده چې شاه شجاع د خپل پلار نیکۀ په هغې حکومت کښې مستحکم او مضبوط کړې شي چې کوم د هغهٔ جائز حق دے. او د هغهٔ باغې رعایا د هغهٔ نه په زور لاندې کړے دے.

د دربار نه پس ماسپښین ته شهزاده په ډیر کروفر د خوانینو د لښکرو او د سرو د معائنې دپاره ووتو د دې خلقو نه علاوه د میر عالم خان د باجوړ زوے، سید رضا چې د تیراه یو لوے سید وۀ هم تیمور له د سلامۍ دپاره راغلل. توره باز خان چې د سعادت خان مومند تربور وۀ او هغهٔ ئې سره سخت مخالفت وۀ هم د خپل اطاعت خطونه سر کلاډ ویډ ته راواستول. سعادت خان په دې ورځو کښې د مومندو مسلم خان وۀ. او په لال پوره کښې وسیدو دا صرف د دشمنۍ وجه وه چې توره باز خان خپل ځان تیمور سره په ډله کښې شاملولو. افریدو د خپل زوړ عادت مطابق دواړو پرو سره ساز باز ساتلو.

د بنګښو په قبیله کښې میان بدرالدین موسیٰ زي ته فیرنګیانو پیغام ولیږلو چې تۀ په دې اطرافو کښې د اولس خلق د امیر صاحب برخلاف وچت کړه او خپل تګ راتګ لفټیننټ میکسن سره قائم کړه. غرض دا چې سر کلاډویډ د پیښور او د کوهاټ په علاقه کښې په هر طرف کارداران ،مخبران او ایجنټان د دوست محمد خان برخلاف د خلقو د پاخولو دپاره واستول.

دیخوا دوست محمد خان خپل زوے محمّد اکبر خان جلال اباد ته د اولس په خلقو کښې د کار کولو دپاره راواستولو هغه د تاترې او د آب خانې د لارو د حفاظت دپاره سعادت خان او خالو خان مومند مقرر کړل. د سعادت خان برخلاف فیرنګیانو توره باز خان نواب خان د پنډیالې او صادق محمد د سعادت خان میرنے ورور په خپل لاس کښې راوستل. او توره باز خان سره ئې د مومندو د خانۍ اقرار وکړو. د تهکال د اربابانو نه د بهرام خان زوے سلام خان، محمد امیر خان، ګوجر خان او حمید خان فیرنګیانو سره شامل شول او د علي

مسجد د اخستو نه پس ئ د خیبر لار د هغوي دپاره د ساتلو لوظ وکړو د فیرنګیانو دا مقصد وۀ. چې هم د خیبر او هم د تاترې آب خانې او د کړپې لارې په خپل قابو کښې وساتي. د هغوي تجویز دا وۀ چې د خیبر په لار به سرکلاډویډ تیمور او د سکهانو مسلمان فوځ په جلال اباد پیشقدمي کوي او دا بله لار به د هغۀ عام ایجنټان او مخبران استعمالوي. د خیبر لار خو د افریدو په قابو کښې وه او څۀ لږ ډیر فوځ د امیر صاحب هم په علي مسجد کښې پروت وۀ له دې کبله فیرنګیانو ته د خیبر په لاره کښې څۀ نه څۀ مشکلات وو دغه شان امیر خان د ناوګی خان او سعادت خان د مومندو خان د کړپې او د آب خانې او د تاترې لارې بندې کړې وې. میر عالم خان د باجوړ، عنایت الله خان د سوات غزن خان د دیر او فرید احمد د فیرنګیانو په ډله کښې شامل وو. دې ټولو ته فیرنګیانو دا هدایت وکړو چې خپلې خپلې لښکرې راجمع کړئ او میرعالم خان سره یو ځاے شئ چنانچه دوئ ټول په باجوړ کښې راجمع شو دغه شان نواب خان او صادق محمد خان د سعادت خان میرني ورونو ته حکم وشو چې خپلو خپلو لښکرو سره په میچنی را یوځاے شئ. او د کړپې او د آب خانې په لارو باندې قبضه وکړئ. انګریزانو هم د خپل فوځ یوه دسته د هغوي د امداد دپاره میچنی ته واستوله مګر دې دواړو له د سعادت خان زوي په اتم اپریل 1839ء شکست ورکړو. څۀ لږې ورځې پس فیرنګیانو بیا توره باز خان او نواب خان له ډیرې روپۍ ورکړې چې د خپل قام خلق راجمع کړئ او دوباره د کړپې او د آب خانې د لارې د قبضه کولو کوشش وکړئ محمد صادق خان ته هم حکم وشو چې توره باز خان سره یو ځاے شئ. دغه شان میر عالم خان ته هم سوال جواب وشو چې د دوئ د امداد دپاره تیار ناست اوسه. توره باز خان ته مزید دا هدایت وشو چې هر کله د سعادت خان زوے شکست وخوري نو بیا د هغې نه پس په ناوګی باندې په امیر خان حمله وکړه او په دې حمله کښې به میر عالم خان هم د هغۀ امداد کوي.

هر کله چې د دې تجویز مطابق توره باز خان اونواب خان دوئ د سعادت خان په زوي باندې حمله وکړه نو د سعادت خان زوے واپس شو او توره باز خان د ګرنګ نومے ځاے پورې د هغۀ تعاقب وکړو. ګرنګ د ناوګی نه نمرخاتۀ طرف ته قریباً لس میله لرې پروت دے. اوس توره باز خان د نمرخاتۀ او میر عالم د قبلې د ډډې نه په ناوګی باندې د حملې کولو تیارۍ کولے. چې اکبر خان ته خبر ولګیدو هغۀ سمدستي سعادت خان د امیر خان مدد له ناوګی ته واستولو. سعادت خان میرعالم خان هم ځان طرف ته راواړولو او په توره باز خان باندې ئ حمله وکړه. نواب خان او صادق محمد خان چې خبر شول چې فیرنګیانو د سعادت خان نه پس توره باز خان سره د مومندو د خانۍ لوظ کړے دے نو هغوي توره باز خان یواځې په ځاے پریښودو او ترینه راغلل. په دې منځکښې سعادت خان له څۀ امداد د ناوګی نه هم

راورسیدو. او هغهٔ توره باز خان له سخت شکست ورکړو. توره باز خان پنډیالۍ ته وتښتیدو. او میرعالم خان ته ئ د امداد درخواست وکړو مگر هغهٔ هیڅوک هم د هغهٔ امداد له را وانهٔ ستول. سعادت خان بیا دوباره په توره باز خان حمله وکړه او سخت شکست ئ ورله ورکړو. هر کله چې ناوگۍ د هر طرف نه په امان شوه نو سعادت خان لالپورې ته واپس راغلو.

اوس سر کلاډویډ افریدو سره د خیبر د لارې په حقله جرگې شروع کړې. د خیبر په لاره پنځهٔ قامونه د افریدو پراتهٔ دي. د خیبر په خلهٔ کښې کوکي خیل دي په دې ورځو کښې عبدالرحمٰن خان د دوئ ملک وهٔ. وهاب خان د دهٔ دشمن د کوکي خیلو بل ملک وهٔ. د کوکي خیلو نه پس ملک دین خیل پراتهٔ دي. خانبهادر خان په دې ورځو کښې د دوئ ملک وهٔ د هغوي نه پس سپاه دي چې د هغوي مشر سلیم خان وهٔ د سپاهو نه پس زخه خیل وو چې د هغوي مشر په دې ورځو کښې الله داد خان او فیض طلب خان وو. د زخه خیلو نه پس د خیبر نه قطب ته شنواري پراتهٔ دي په دغه زمانه کښې د هغوي مشران سنگر خان، غالب خان او مهلک خان وو.

د عي مسجد قلا چې په کښې د دوست محمد خان فوځ پروت وهٔ د ملک دین خیلو په علاقه کښې ده. مگر چونکې کوکي خیل د جمرود او د علي مسجد په منځکښې د خیبر په خلهٔ کښې پراتهٔ دي په دې سبب په دې ټولو قبیلو کښې کوکي خیل زیات اهمیت لري. په دې ټولو مشرانو کښې خان بهادر د ټول خیبر مشر گڼلے شو. او په کومو ورځو کښې چې شاه شجاع شړونکے شوے وهٔ نو یو څو ورځې د دهٔ په کور کښې پاتې شوے وهٔ.

د ویډ او د شهزاده تیمور پیښور ته د رارسیدو نه وړومبے هم مستر لارډ د افریدو ډیرې جرگې راغوښتې وے او هغوي له به ئ روزانه د خرڅ دپاره روپۍ ورکولے د خیبر د جرگونه علاوه هغهٔ د تیراه نه هم ډیر مشران راجمع کړي وو رحمت خان اورکزي چې دسکهانو پنشن خور وهٔ هغه هم راغلے وهٔ او ځان سره ئ اتهٔ سوه سړي راوستي وو. دا ټول قریباً دوه میاشتې په پیښور کښې دیره وو او د فیرنگیانو خرڅ خوراک به ئ خوړلو. هر کله چې ویډ راورسیدلو نو هغهٔ دا غوښتل چې دوئ سره سمدستي څهٔ فیصله وشي کهٔ نهٔ وي نو د افریدو په دومره ډیرو کسانو باندې تاوان کول بې سود دي. هغهٔ سمدستي ټوله جرگه راجمع کړه او ورته ئ ووئیل چې کهٔ چرې خیبریان زمونږ په جنبه کښې شاملیږي نو زهٔ به د خیبر پنځو کسانو له دومره رقم ورکړم چې هغوي به ځان له هر یو کس زر زر کسان برتي کړي په شرط د دې چې هغوي ماله خپل خپل یرغمال راکړي او نور زهٔ دا اقرار کوم چې شاه شجاع به هغوي ته هغه هومره ماجبونه ورکوي څومره چې هغوي ته دا وخت دوست محمد خان ورکوي. افریدو د غور دپاره مهلت وغوښتو اخر د ډیرو جرگو نه پس افریدو دا تجویز

نامنظور کړو او د هغوي جرګې خورې شوې.

په يولسم اپريل سيد احمد شاه د سيد محمد شاه زوی چې د تيراه يو لوی زبرګ وۀ د فيرنګيانو کيمپ ته د خپلو خدماتو د پيش کولو په خاطر پيښور ته راغلو هغۀ سره د هنګو سرفراز خان ، د نرياب نجابت خان او مير عالم خان کاکړ چې د حاجي خان کاکړ ورارۀ وۀ راغلل . فيرنګيانو د سيد احمد شاه او د هغۀ د ملګرو ډير خاطر تواضع وکړو او څۀ وخت چې هغوي رخصتيدل نو سيد احمد خپل زوی په انګريزي کيمپ کښې پريښودو او فيرنګيانو سره ئې لوظ وکړو چې مونږ به لفټيننټ ميکسن سره د پنځو سوؤ سړو سره شامل شو. او د کرمې په طرف به خلق د دوست محمد خان برخلاف پاڅوؤ.

د دې سيد احمد نه علاوه سيد رضا، محمد رضا، او حسن رضا هم د شهزاده تيمور کيمپ ته راغلل. دوئ هم په تيراه کښې وسيدل. او بيشانه ډير مريدان ئې په خواو شا علاقه کښې لرل. دې ټولو زبرګانو صرف د روپو او ماجبونو ګټلو دپاره خپله پيري مريدي فيرنګيانو ته پيش کړه.

ويډ او تيمور په درويشتم مارچ پيښور ته رارسيدلي وو ولې چونکې د سکهانو امدادي فوځ لا تيار نۀ وۀ نو دا ټوله موده هغوي په قبيلو کښې په کار کولو کښې او چارچاپيره دوست محمد خان ته د فسادونو او بغاوتونو د جال په خوررولو کښې تيره کړه. په دې اثنا کښې سر کلاډويډ متواتر خطونه مها راجه رنجيت سنګهه ته د امدادي فوځ د راستولو دپاره وليږل چنانچه مها راجه خپل زوی کنور نونهال سنګهه په دې کار مقرر کړو چې هغۀ صرف د مسلمانانو فوځ د مسلمانانو افسرانو د لاندې د دې مهم دپاره تيار کړي. څۀ لږه موده پس د سکهانو قريباً لس زره فوځ چې ټول مسلمانان وو د کرنل بساون خان د کمان د لاندې تيار شو.

په دې منځکښې سر کلاډويډ يو ځل بيا د افريدو د راړولو دپاره کوششونه شروع کړل هغۀ عبدالرحمٰن خان د کوکي خيلو خان او الله داد خان او فيض طلب خان د زخه خيلو مشرانو سره خط و کتابت شروع کړو. او د لويو ماجبونو او خلعتونو وعدې ئې ورسره وکړې او ورته ئې وليکل چې په هر شان چې وي تاسو د علي مسجد نه دَ اکبر خان سړې وباسئ مګر هغۀ د دې دپاره داسې مشکل شرطونه پيش کړل چې فيرنګيانو هغوي سره په دې باره کښې نورې خبرې اترې بندې کړې . کوکي خيلو ته سکهانو د جمرود قلا ته د اوبو ورکولو په عوض کښې درې زره روپۍ سالانه ورکولې او څوارلس زره روپۍ جاګير به سکهانو سعادت خان ته ورکولې. رنجيت سنګهه دا دواړه ماجبونه د انګريزانو په وينا بند کړل.

په اتم مئ انګريزي کيمپ تهکال ته منتقل شو او سکهه امدادي فوځ هم راجمع شو د دې نه علاوه سر کلاډويډ او شهزاده تيمور ډير بې قاعدې فوځ د اولس د خلقو نه برتي کړو.

اوس د هغوي اراده په خيبر باندې د پيشقدمۍ کولو وه. ولې د سعادت خان مومند د مصروف کولو دپاره هغوي وړومبے باجوړ او شبقدر طرف ته کارروائي شروع کړه.

توره باز خان دوئ چې څۀ وخت شکست وخوړو نو هغوي حليمزو سره پناه واخسته. د سعادت خان زامنو او خالو خان په هغه ځاے کښې هم په هغوي باندې حمله کول غوښتل مګر حليمزو هغوي ته پيغام وليږلو چې دوئ اوس زمونږ ميلمانۀ دي او کۀ چرې تاسو په دې ځاے کښې په هغوي حمله وکړه نو مونږ به درسره جنګ وکړو. په دې دواړو فريقو کښې لا هم دغه شان خبرې اترې کيدلے چې توره باز خان او نواب خان فيرنګيانو نه بيا امداد وغوښتو چونکې د فيرنګيانو هم دا منشا وه چې د سعادت خان او اکبر خان توجه د خيبر نه بل طرف ته وړاوؤ په دې وجه ويڼ شهزاده محمد صالح چې د شهزاده محمد هاشم زوے وۀ څلور سوه سورو او شلو تنو پياده او لس څرخي توپو سره د ګنداؤ په لاره باجوړ ته واستولو. شهزاده صالح سره د ميرعالم خان باجوړي زوے اوسيد نظام الدين چې د سيد بابا جان د کونړ مشر زوے وۀ او باجوړ کښې شړونے وۀ او څۀ اربابان هم شامل شول. دا دسته د شبقدر په لاره باندې د توره باز خان او د نواب خان د امداد دپاره روانه شوه. مسټر کيرن چې په باجوړ کښې انګريزي ايجنټ مقرر شوے وۀ هغۀ ته هم دې دستې سره د شامليدو حکم وشو. د سوات فريد احمد ته هم هدايات وليږلے شول چې تۀ په باجوړ کښې د اولس خلق پاڅوه. او شهزاده صالح سره يو ځاے شه. چې محمد صالح شبقدر ته ورسيدو نو علاوه د توره باز خان او نواب خان د پنډيالې نه هغۀ سره د ميچنې دلاسه خان، نواب خان او محمد صادق خان هم شامل شول.

دې سره سم فيرنګيان د خيبر په طرف وړاندې شول او په علي مسجد باندې ئې د حملې کولو دپاره پيشقدمي شروع کړه چونکې افريدو سره هيڅ جوړه جاړه نۀ وه شوے هغوي د سکهانو په فوځ باندې چپاوونه شروع کړل سر کلاډويڼ د عبدالرحمٰن ملک دشمن وهاب ګل ملک د کوکي خيلو ته جواب وکړو چې د شادي بګيار په خلۀ کښې د جمرود په زړه قلعه کښې خپل سړي واچوه او افريدي په دې لاره باندې کوزيدو ته مۀ پريږده مګر سره د وهاب ملک د کوششونو هغوي به د سکهانو په فوځونو باندې شب خونونه کول او د دواړو طرفو نه به سړي مړۀ کيدل.

په علي مسجد کښې د اکبر خان صرف يو سل د ټوپکو خاوندان دننه په قلعه کښې پراتۀ وو. او څلور سوه يا پنځۀ سوه سړي بهر د قلعې په خوا کښې د خوړ په غاړه په خيمو کښې پراتۀ وو. د هغوي افسر محمد شاه غلجے او شريف خان وو. د اکبر خان څلويښت تنه د ټوپکو خاوندان کافر تنګي کښې ناست وو. اکبر خان سره سعادت خان، محمد عالم خان اورکزے، او د تهکال څۀ اربابان خپلو خپلو سړو سره د خيبر نه بهر په بله ډډه پراتۀ وو. د

دې خانانو د سرو نه علاوه هغهٔ سره قريباً دوه زره خپل د ټوپکو خاوندان وو چې د هغوي افسران نواز خان او عزيز خان غلجي وو. دې لښکر سره قريباً ديارلس يا څوارلس لويې توپې او پنځويشت څرخي توپې هم وې د توپخانې افسر شاه محمد يو هندوستانے وهٔ هر کله چې فيرنګيان د تهکال نه خيبر طرف ته راوړاندې شو نو اکبر خان چار ديهه ته چې د ډکې او د جلال اباد په منځکښې پروت دے راغلو.

هم په دې ورځو کښې د محمد اکبر خان يو خط چې هغهٔ دريا خان د پيښور يو خان ته ليکلے وهٔ امير خان ارباب د تهکال ونيو او سرکلاډ ويډ ته ئ ورکړو دريا خان د سکهانو سخت دشمن وهٔ او په دې وجه ئ دوست محمد خان سره ډيره جوړه وه. دا خط علي شامت چې د سرکلاډ ويډ ميرمنشي وهٔ پخپل کتاب "سکهان او افغانستان" کښې نقل کړے دے چونکې دا خط دلچسپ دے او د حاجي خان کاکړ متعلق هم څهٔ واقعات ظاهروي د دې کبله مونږ دا خط بجنسه ترجمه کوو:

"د سلام عليکم نه پس ماته ستا چيټي راورسيده زهٔ ستا د بهادرئ او ديندارئ نه ښهٔ واقف يم په تا دې د خدائے رحمت وي. د قندهار د معاملې چې تا تپوس کړے دے هغه دا شان ده. (څهٔ وخت چې دا ملعون قوم (يعنې فيرنګيان) قندهار ته راورسيدل نو حاجي خان کاکړ خپل ځان کافر کړو او خپل ټول فرائض او خدمات ئ هير کړل او دشمن ته وتښتيدو. په دې وجه مونږ ډير پريشانه يو او چونکې د سردارانو د قندهار دپاره بله لار نهٔ وه د دې دپاره هغوي ګرشک او نادر علي ته (چې د محمدزو د کور زړه قلا ده) وتښتيدل. هغوي په خپله سره د سرو د هلمند سيند په غاړه باندې ديره شوي دي. په دې شان کافرو په قندهار باندې قبضه وکړه. مګر د امير نوکران اوس د هر طرف نه فوځونه را يوځائے کوي د ترکستان قبائل او غلجي هم د دين دپاره جنګ ته ځان تياروي د ايران او د روس نه هم د هغوي د راتلو خبر رارسيدلے دے او نصرانيان په قندهار کښې ډير په ويره کښې پراتهٔ دي. او چونکې د هر طرف نه په هغوي باندې حمله کيدونکے ده د دې دپاره په سخت شش و پنج کښې دي چې څهٔ وکړي شهزاده کامران هم دې منحوس قوم ته ليکلي دي چې تاسو د روسيانو برخلاف د هرات د حفاظت دپاره ما له امداد راکړئ. هر کله چې فيرنګيانو په قندهار کښې دا حال وليدو نو هغوي خپل ملک ته د کومک دپاره وليکل ولې مونږ د خدائے تعالیٰ نه اميد لرو چې د ګرمي په وجه به هغوي له نوي فوځونه را ونهٔ رسي. او کوم چې دلته دي هغه به تباه او برباد شي. د دې غرض دپاره امير سخت جدوجهد کښې مصروف دے. او څهٔ وخت چې محمد شاه، شاه ايران رارواں شي نو هغه به هم پيشقدمي وکړي فيرنګيان اوس ځان په قندهار کښې مضبوطوي خدائے پاک دې زمونږ د مذهب دا دشمنان تباه کړي. او د هغوي مخونه دې تور کړي د هر طرف نه د اسلام امتيانو وسله راوچته کړې ده او د هوتکي او توخي قبائلو

نه (چې د قندهار او د غزني په منځکښې پراته دي) قريباً پنځوس يا شپېته زره خلق راجمع شوي دي او امير صاحب ته ئ د فوځ د راليږلو دپاره خط ليکلے دے چنانچه هغه محمد افضل خان د دريو زرو سورو او لسو توپو سره په دغه طرف په دې غرض ليږلے دے چې هغه د قلات غلزے او د موغور د علاقې خلق راوباسي او د کفارو بيخ کني وکړي او د هغوي په مال غنيمت باندې ځان موړ کړي نن زۀ هم سره د خپل فاتح او تندر غورځونکو توپو په چارديهه کښې ديره يم کۀ چرې تاول خير خيريت وي نو يقين ولره چې مونږ به ډير زر ستا ځاے ته راورسو زمونږ د راتلو په انتظار کښې اوسه او ماته خبر راکوه چې دغه خوا څۀ کيږي او د خپل خير خيريت نه مې هم خبروه."

د جولائي تر مياشتې پورې ويډ او د هغۀ افسران د سکهانو د امدادي فوځ په امداد سره د خيبر په خلۀ کښې پوستېونه جوړ کړل او شهزاده محمد صالح د ناوګي په لاره باجوړ ته لاړو او د تيراه سيدانو ته هم په هغه طرف د پيشقدمۍ حکم وشو. علاوه د پوستېونو نه ويډ د خيبر په خلۀ کښې په چارچاپيره غرونو سنګرونه هم جوړ کړل. افريدو د ټولو نه وروميے په دې سنګرونو باندې حملې وکړې مګر هغوي سره د فيرنګيانو د فوځ هيڅ جواب نۀ وۀ. اخر لاچار هغوي واپس شو. چونکې د اکبر خان د طرف نه نۀ د خيبر او نۀ د علي مسجد د حفاظت دپاره په لويه پيمانه څۀ انتظام شوے وۀ په دې سبب انګريزان او د سکهانو مسلمان فوځ وررو وررو د خيبر په دره باندې ورننوتو او د افريدو بې قاعدې ټولو به په هغوي باندې د چارچاپيره غرونو نه ډزې کولے. اګر کۀ د تيمور او د سکهانو فوځ ته د افريدو د لاسه ډير نقصان ورسيدو مګر د اولس د خلقو او باقاعده منظم په وسله پُر فوځ تر منځه د برابرۍ جنګ نشي کيدے. په دې وجه د څۀ معمولي جنګونو نه پس د سکهانو فوځ په علي مسجد باندې په اوويشتمه جولايي قبضه وکړه او فيرنګيانو خپل فوځ په هغه ځاے کښې ديره کړو. ديخوا ته محمد صالح په پنډيالې باندې وروړاندې شو د سعادت خان سرې د څۀ معمولي مقابلې نه پس د دې کلي نه ووتل او محمد صالح پرې قبضه وکړه پس د هغې نه هغۀ بيا د ناوګي محاصره وکړه مګر د ناوګي خان نواب خان په ډيره بهادرۍ د هغۀ مقابله وکړه او هغۀ له ئ شکست ورکړو شهزاده محمد صالح چې د ويډ او د تيمور د خيبر نه په کاميابۍ سره د وتو نه خبر شو نو هغوي سره د شامليدو دپاره روان شو.

د علي مسجد د اخستو نه پس د ويډ او د سکهانو د امدادي فوځ هيڅ قابل ذکر مقابله ونۀ شوه او هغوي سم ډکې ته مخه وکړه. محمد اکبر خان د هغوي د رارسيدو نه وروميے د خپل پلار په حکم واپس کابل ته تلے وۀ. سعادت خان هم هغه شان په لالپوره کښې په خپله قلعه کښې پروت وۀ. چې فيرنګيان ډکې ته راورسيدل نو سر کلاډويډ د ډکې نه سعادت خان ته د اطاعت د منلو دپاره خط وليږلو او ورته ئ وليکل چې کۀ چرې تا بې مقابلې

اطاعت ومنلو نو تاته به هيڅ ونهٔ وئيلے شي او كهٔ نهٔ وي نو په لالپوره باندې به حمله وشي هغهٔ د دې خط په درېمه ورځ جواب وركړو چې زهٔ په خپله نهٔ شم درتلے البته زهٔ به خپل زوے درولېږم په دې سر كلاډويډ هغهٔ ته سخت جواب وليكلو چې تهٔ ضرور پخپله راشه. مګر د دې خط سعادت خان هډو څهٔ جواب ور نهٔ كړو درې ورځې پس ويډ په لالپوره باندې د حملې تيارى كولے مګر د سيند نه د پورې وتو دپاره لا نور انتظام نهٔ وهٔ شوے چې خبر راغے چې سعادت خان د لالپورې نه وتښتيدو. سمدستي د تيمور او د ويډ سرو په قلعه باندې بې دزه بې دوزه قبضه وكړه او د لالپورې كلے ئې توره باز خان ته حواله كړو چې لا هم هغه شان په باجوړ كښې د فيرنګيانو په فوځي خدماتو كښې مصروف وهٔ. د سعادت خان د تيښتې اصلي وجه دا وه چې هر كله هغه د دوست محمد خان د فرار كيدو نه خبر شو نو هغهٔ سمدستي يو سړے سره د خپل اطاعت د خطونو شاه شجاع ته په دې خيال وليږلو چې ګنې د ملک اصلي واكدار شاه شجاع دے. په دې خطونو كښې هغهٔ شاه شجاع ته دا درخواست وكړو چې تهٔ ماته يو شاهي فرمان د دې غرض دپاره راوليږه چې په هغې كښې زهٔ د مومندو خان تسليم شم. چنانچه شاه شجاع دا شاهي فرمان هغهٔ له راوليږلو. مګر هر كله چې هغه فرمان سر كلاډ ويډ ته وښودلے شو نو هغهٔ نامنظور كړو. دغه اختيار وهٔ د شاه شجاع چې هغهٔ په خپل حكم د يوې تپې خان هم بغير د فيرنګيانو د منظورۍ نه نهٔ شو مقررولے.

د ډكې په كيمپ كښې سر كلاډويډ د علي مسجد د تسخير متعلق د ټول فوځ د افسرانو باقاعده شكريه ادا كړه. او چونكې كنور نونهال سنګهـ پنځهٔ زره روپۍ په طور د انعام په فوځ كښې د تقسيمولو دپاره راستولے وے د دې دپاره ويډ د خپل حكومت د طرف نه هم دغې رقم سره پنځهٔ زره روپۍ يو ځاے كړې او د سكهانو مسلمان فوځ له ئې په طور د انعام وركړې. ويډ د خيبر د حفاظت دپاره په علي مسجد كښې د فوځ يوه مضبوطه دسته ديره كړه. په لنډي خانه كښې ئې هم محافظې دستې مقرر كړې او په هفت چاه او په ډكه كښې ئې هم د فوځ يوه لويه حصه پريښوده.

په ديارلسم د اګست سر كلاډويډ او شهزاده تيمور د ډكې نه د كابل په لور روان شو او باقي مانده فوځ ئې خان سره واخستو. ورومبے پړاو هغوي په هزار نو كښې وكړو مير ابوالحسن خان او ملا شكور به چې د شهزاده تيمور وزيران وو د فوځ نه وړاندې د خلقو د رضا كولو او په خپله جنبه كښې د شاملولو دپاره تلل. د هزار نو نه بيا فوځونه چار ديهه ته راغلل. د چارديهه نه بيا علي بغان او علي بغان نه مخكښې جلال اباد ته دوئ په اوولسم اګست راورسيدل. په لاره باندې په هر مقام سر كلاډويډ او شهزاده تيمور د شاه شجاع حكومت په خلقو باندې تسليمولو. صرف سيد هاشم د كونړ د شاه شجاع د حكومت د منلو نه انكار وكړو. مير ابوالحسن خان د جلال اباد ګورنر مقرر شو. او د فوځ يوه لويه حصه په

هغه ځای کښې هم ديره شوه.

په يويشتم اگست دا ټولے چارباغ ته ورسيدو او په دريم ستمبر په کابل ښار کښې په ډيـر شان د خپل فوځ سره داخل شو. د لارې نه دواړه طرف ته انګريزي او د سکهانو مسلمان فـوځ خپلو خپلو وردو کښې ولاړ وو د ميکناټن او د شاه شجاع د طرف نه وفدونه او سر جان کين پـخپلـه د سـر کلاډويډ او د شهزاده تيمور د راوستو دپاره مخې له راووتل. او انګريزي تـوپخانې د هغهٔ د رارسيدو سره سلامي وکړه. په دې طريقه شهزاده تيمور په بالاحصار کښې داخل شو او بادشاه د نورو شهزادګانو سره هغه په خپل خوا کښې کښينولو.

اوس مـونـږ د هـغـې دريـم طـرف قـصـه مختصر بيانوؤ چې په کوم کښې فيرنګيانو د دوسـت مـحـمـد دپاره بغاوت پيدا کړے وؤ او د هغې په وجه د هغهٔ دپاره په کابل کښې پاتې کيـدل ناممکن وو. دا د کوهستان د رعايا د دوست محمد خان برخلاف راوچتيدل وو د دې ټـولـو فسادونـو بـانـي غـلام خـان پـوپـلـزے وؤ چې په ظاهره د دوست محمد خان په مقربو دوستـانـو کښې وؤ مګر په اصل کښې ابن الوقت او د برې ملګرے وؤ. لا انګريزانو ښکاره په افـغـانستان باندې د لام تړلو اراده نهٔ وه ظاهره کړے مګر د دوست محمد خان او د فيرنګيانو تـرمـنـځـه د اختـلاف بـنياد ايښودے شوے وؤ چې دا فريبي سردار د ناجوړتيا په بهانه د علاج دپـاره هـنـدوسـتـان ته راغلو او په هغه ځاے کښې ئې سر کلاډويډ پوليټيکل ايجنټ لدهيانه او مسټـر ولـيـم فـريـزر د دهـلـي ريزيډنټ سره ملاقاتونه او خبرې اترې وکړې او هغوي ته ئې د خپـلـې ملګرتيا او فيرنګيانو سره د پرې يو کولو يقين ورکړو. د دې نه پس چې د برنس مشن کـابـل تـه راغـلـو نو په هغه ځاے کښې هم برنس سره د هغهٔ ډيرې د راز باز خبرې وشوې. او هر کله چې د هغهٔ نه برنس په پټه کښې د شاه شجاع په افغانستان کښې د دوباره بادشاه کيدو متـعـلـق تپوس وکړو نو هغهٔ ورته ووئيل چې کهٔ چرې فيرنګيان شاه شجاع په افغانستان کښې بـادشـاه کـول غـواړي نـو د مـلـک سرداران به د هغوي بالکل مقابله ونهٔ کړي بلکې په ډيرې خوشحالۍ کښې به د شاه شجاع حکومت تسليم کړي.

څهٔ وخـت چـې انـګريزانو په افغانستان باندې د لام تړلو بنا وکړه نو دې غلام خان په هـر طـرف به انتهائي کوششونه د خلقو د دوست محمد خان نه د بد دله کولو او انګريزانو ته د را اړولـو دپـاره وکـړل. او څهٔ وخت چې انګريزي فوځونه په قندهار باندې قابضان شول نو هـغـهٔ د کـابـل د منټ منټ واقعات په متعلق پټ پټ خطونه سر کلاډويډ ته په پيښور کښې او ميکناټن دوئ ته په قندهار کښې استول. د قندهار نه هغهٔ له فيرنګيانو په پوکهر نومے يو هندو د شـکـارپور سوداګر باندې چې په کابل کښې وسيدو د څلويښتو زرو روپو رقعه ورکړه. دغه روپـې پوکهر هغهٔ ته ادا کړې. او غلام خان ته دا هدايات وشول چې په دې روپو تهٔ د دوست مـحـمـد خان برخلاف په چارچاپيره علاقه کښې خلق راپاڅوه چنانچه هغهٔ د کابل يو لوے ملا

چې د هغهٔ نوم حافظ جي وهٔ او د مير واعظ زوے وهٔ د ځان سره ملګرے کړو هم په دې طريقه هغه خواجه خان جي او ډير دراني او قزلباش سرداران ځان ته پټ پټ راواړول اخر دوست محمد خان ته د دې غدار نمک حرام د منصوبو خبر وشو او هغهٔ د غلام خان د نيولو حکم وکړو مګر هغهٔ د ښځو جامې واغوستې برقعه ئې په سر کړه او چې نمر ختو نو په يوه خره باندې سور شو او د کابل نه وتښتيدو. غلام خان چې د دوست محمد خان د قابو نه ووتو نو په اس سور شو او په تګاؤ کښې ئې ملک شهداد خان چې د بچه مازو په نوم باندې مشهور وهٔ او د تګاؤ حاکم وهٔ سره پناه واخسته. هغهٔ ملک شهداد خان هم د دوست محمد خان برخلاف د بغاوت کولو ته ولمسولو. چنانچه شهداد خان خپل ټول قوم د غلام خان په طرف شو. او بيا دا دواړه کسان کوهستان ته لاړل او په هغه ځاے کښې ئې هر يو مشر هر يو خان او هر يو ملک له د خپلې درجې مطابق شلويښت زره روپۍ ورکړې او دا ټول مشران لکه مير مسجدي، مير درويش ، مير خوجه، خليفه ابراهيم، مير سکندر شاه، مير سيف الدين ، ملک عيسيٰ خان او د نجراؤ ، پنج شير، غوربند، کوهستان او کوه دامان ټول خوانين د دوست محمد خان برخلاف راوچت شول. او په کابل باندې ئې د چپاؤ کولو دپاره ځان تيار کړو.

هر کله چې غلام خان او شهداد خان کوهستان ته د کوهستانيانو د راپاڅولو دپاره لاړل نو حافظ جي چې لا په کابل کښې وهٔ دوست محمد خان ته د کوهستان د شر د دفع کولو دپاره خپل خدمات پيش کړل چنانچه دا بې دينه ملا په دې بهانه کوهستان طرف ته لاړو. او غلام خان هغهٔ له اتهٔ زره روپۍ رشوت ورکړو. او هغهٔ هم د کوهستانيانو په پاڅولو کښې هغوي سره ملګرے شو. د حافظ جي په کوهستان کښې ډير مريدان وو نو د دې مذهبي درجې په وجه د هغهٔ اثر او رسوخ په کوهستان کښې ډير زيات وهٔ. له دې کبله ټول کوهستانيان د هغهٔ په خلهٔ راوچت شول. دوئ سره شهزاده محمد يحييٰ چې د شاه شجاع د خاندان سدوزے وهٔ هم شامل شو.

دوست محمد خان ته چې دا معلومه شوه چې پهوکر هندو غلام خان له شلويښت زره روپۍ ورکړې دي نو هغه ئې سمدستي ونيولو او په بندي خانه کښې ئې واچولو. بيا ئې د غلام خان ټول مال جائداد ضبط کړو او کور ئې ورله وران کړو. هر کله چې قزلباشو د سنيانو دا حال د کابل په خزاوشا کښې وليدو نو دوست محمد خان ته ئې ووئيل چې کهٔ چرې مونږ د انګريزانو مقابلې ته لا د غزني او لا د خيبر په طرف ځو نو کوهستانيان به غلام خان او حافظ جي سره زمونږ په کورونو باندې راوخيژي او د کابل سني رعايا سره به په ملګرتيا کښې هغوي زمونږ ټول بال بچ قتل کړي. په دوست محمد خان باندې چې ټول چارچاپيره ملک سور اور شو نو هغهٔ په يو باغ کښې د ټول قام يوه جرګه راغونډه کړه او په يو ډير مؤثره لهجه کښې ئې د خپل تقرير په دوران کښې هغوي ته ووئيل چې په هر شان چې وي تاسو ما سره

ودرېږئ او ذ مسلمانانو د دې ملک نه کفار وشړئ.

نواب جبار خان هم د امیر دوست محمد خان تائید وکړو.مګر څۀ وخت چې د کابل غټو غټو عیش پسندو سردارانو دا ولیدل چې شاه شجاع سره د یو انګریزي عظیم الشان فوځ د یو طرف نه سر کلاډویډ او شهزاده تیمور د بل طرف نه او کوهستانیان د دریم طرف نه ورو ورو په کامیابۍ سره د کابل نه راچاپیره کیږي نو هغوي زړۀ بائلو او هر چا نوي حکومت نوي افسرانو او نوي مالکانو سره ساز باز جوړ کړو. صرف د بامیان لاره د هغۀ د تیښتې دپاره قبلې طرف ته ازاده وه. اګر چې انګریزي ایجنټان او د شاه شجاع د ډلې سړو په هغه طرف هم د بغاوت د پیدا کولو وس کړے وۀ مګر څۀ قابل ذکر کامیابي ئ نۀ وه حاصله کړے. نو د ډیر غور و فکر نه پس دوست محمد خان فیرنګیانو سره د مقابلې اراده پریښودہ او لکه څرنګ چې وړومبے ذکر شوے دے هغۀ ترکستان ته وتښتیدو. په دې نیت چې په بله مناسب موقع به خپل ملک د غیر قوم د تسلط او د حکومت نه ازادوم.

غلام خان چې د دوست محمد خان د تیښتې نه خبر شو نو د انګریزانو او د شاه شجاع نه یوه ورځ وړومبے سره د خپل کوهستاني بې قاعدې فوځ په کابل کښې داخل شو. او د شاه شجاع د حکومت اعلان ئ وکړو. فیرنګیانو او شاه شجاع دې غلام خان سره د دې خدماتو په عوض کښې ډیرې لویې لویې وعدې د انعامونو جاګیرونو هم تحریري او هم زباني کړے وے او ورسره ئ دا اقرار کړے وۀ چې د شاه شجاع په زمانۀ حکومت کښې به هغۀ له ډیر عزت او لویه عهده ورکړې شي. مګر هرکله چې په نوي حکومت اوپه نوي دور باندې ورځې تیرې شوې نو غلام خان سره دا وعدې او اقرارونه هم هیریدل. تر دې چې فیرنګیانو او شاه شجاع تر اخره پورې په دې طمع کښې وساتلو مګر هیڅ شے ئ ورله ور نۀ کړو. موهن لعل د دې سړي اخره خاتمه په دې شان بیانوي :

"In return for his (Ghulam Khan's) services we had engaged ourselves, both in writing and in words to re-place him in his hereditary rank, and to honour him with permanent rewards, both from our Govt; and from the Shah, but yet none of those promises were ever fulfilled in any degree. We on our part continued to make one promise after another, without doing more than merely to promise; and Ghulam Khan, still relying upon the Virtue of our words, did not cease to devote himself to our interest on his part untill we were compelled to leave Afghanistan. He then followed us with his family to Ludhiana, as his stay in Afghanistan would endanger the safety of his life in our absence. He thus lost his estates, his house, and his relations in attaching himself to us inspite of his countrymen, and he became an exile in our territory. How we fulfilled our promises and appreciated his services is not unworthy to be mentioned here. We gave him a dress of honour in Kabul; and yet we allowed the Shah and his Ministers Mulla Shakoor and Nizamuddaulleh, to treat him slightingly even then and there, and to levy taxes on his very small private

**property, which was free in the time of the Amir. This threw him into such poverty, that at Ludhiana he dismissed his adherents, sold all his horses and every article he had, and afterwards he was starved, having fallen Sick; he expired, leaving a family in the most distressed and impoverished State!!."**

ترجمه: "د هغهٔ (د غلام خان) د خدماتو په صله کښې مونږ تحريري او زباني اقرارونه هغهٔ سره کړي وو چې مونږ به تاله موروثي درجه واپس درکوؤ او مستقل عوضانه به هم بادشاه او هم زمونږ حکومت درته درکوي مګر دا يوه وعده هم هغهٔ سره يو پوتے هم پوره نهٔ کړې شوه. مونږ به د خپل طرف نه هغهٔ سره د يوې وعدې نه پس بله وعده کوله مګر د وعدې کولو نه بغير مونږ هغهٔ سره هيڅ زياتي ونهٔ کړل. ولې دې غلام خان زمونږ په وعدو او اقرارونو باندې اعتبار لرلو او د خپل طرف نه ئې زمونږ خدمت کولو نه چرې پهلو تهي ونهٔ کړه. تر دې پورې چې مونږ د افغانستان نه په وتلو باندې مجبور شو بيا هغه مونږ پسې سره د خپل بال بچ لدهيانې ته راغلو ځکه چې زمونږ په غير موجودګۍ کښې د هغهٔ په افغانستان کښې پاتې کيدل خپل ژوندون په خطره کښې اچول وو. په دې شان هغهٔ د خپل جائداد، کور، او رشته دارانو نه محروم شو. صرف په دې وجه چې هغهٔ باوجود د خپل وطن د خلقو ځان مونږ سره په ډله کښې شامل کړو او بيا زمونږ په ملک کښې جلاوطن شو. په دې ځاے کښې دا بيانول چې مونږ هغهٔ سره خپلې وعدې څرنګ پوره کړې او مونږ د هغهٔ د خدماتو په کومه طريقه قدر وکړو نامناسب نهٔ دي. مونږ هغهٔ له په کابل کښې خلعت ورکړو سره د دې مونږ شاه او د هغهٔ وزيران ملا شکور او نظام الدوله دې ته پريښودل چې هغهٔ سره هم په هغه ځاے د سپکاوي سلوک وکړي. او د هغهٔ په خپل ذاتي جائداد باندې ټيکس ولګوي چې کوم وړومبے د امير په زمانه کښې د ټيکس نه ازاد وۀ. دې ټولو څيزونو هغه دومره غريب کړو چې په لدهيانه کښې هغهٔ خپل ټول سړي موقوف کړل. اسونه او خپل ټول مال اسباب ئې خرڅ کړو او چې بيمار شو نو د لوږې نه مړ شو. د مرګ نه پس د هغهٔ بال بچ په سخت تکليف او د غربت په حالت کښې پاتې شول."

هر کله چې انګريزي فوځونه د لارډ آکلينډ د اعلان مطابق شاه شجاع د خپل پلار نيکهٔ په تخت باندې کښينولو نو قدرتي طور باندې دا سوال پيدا شو چې اوس به انګريزي فوځونه هندوستان ته واپس ځي او کنه؟ د اګست او ستمبر مياشتې خو انګريزي فوځ ډيرې په خوشحالۍ، په مستو او په تماشو کښې تيرې کړې آب و هوا نهايت خوشګواره وه قدرتي مناظر بيشانه ښکلي وو د کابل او د هغې د مضافاتو ميوې لکه انګور، خربوزې، ګرما، سيبان، ناشپاتۍ په ډير کثرت سره بياموندې شوې. په دې ټوله عرصه کښې فوځونو قسماقسم تماشې، لوبې د خوشحالۍ پريډونه او کرتبونه د کابل په رعايا باندې د اثر اچولو دپاره وکړل. ټول سپاهيان او افسران په دې خوشحالۍ کښې ناست وو چې اوس به لږه موده پس

بیا د هندوستان میدانونو ته کوزیږو. د هغوي په یقین کښې د جنګ د تکلیفونو او د خطرناک سفرونو خاتمه شوې وه. شاه شجاع لوی لوی دربارونه وکړل او د قسماقسم اعزازات، خطابونه او خلعتونه ئې سردارانو او خپلو ملګرو له د هغوي د خدماتو په عوض کښې ورکړل. سپاهیانو او افسرانو د کابل په بازارونو کښې د خپلو خپلوانو او دوستانو دپاره عجیبه عجیبه څیزونه اخستل شروع کړل. او په دې طمع کښې کښیناستل چې اوس به بیا هندوستان په ښکلو ښکلو بنګلو او کلبونو کښې د ارام او عیش ژوند تیروو.

چنانچه په اتلسم ستمبر د بمبئی فوځ د خوجک کوتل او د درهٔ بولان په لاره باندې د هندوستان په طرف باندې روان شو. په دې سبب د بنګال د فوځ هم طمع پیدا شوه چې نن سبا زمونږ د فوځ ډیرې حصې ته هم په ښکته د روانیدو حکم وشي. ولې په دویم اکتوبر د بنګال فوځ په نوم احکام صادر شول چې د دې فوځ لویه حصه به د میجر سرولوبي کاټن د سپه سالارئ د لاندې په افغانستان کښې پاتې کیږي او باقي څهٔ لږ شان فوځ ته د واپس کیدو اجازت وشو. کومو فوځونو ته چې په افغانستان کښې د پاتې کیدو حکم شوے وهٔ د هغې یوه حصه په کابل کښې مقرر شوه. دویمه حصه ئې په جلال اباد کښې، دریمه حصه ئې په غزني کښې د میجر میکلارن د لاندې او څلورمه حصه ئې د میجر جنرل ناټ د سالارئ د لاندې په قندهار کښې مقیم شوه. څهٔ فوځ بامیان ته ډاکټر لارډ پولیټیکل ایجنټ سره هم واستولے شو دغه شان انګریزي فوځونه د افغانستان په ټولو لویو لویو مقاماتو کښې چې د فوځي اهمیت ځایونه وو مستقلې ډیرې واچولې او په ټول ملک باندې ئې فوځې قبضه وکړه. واپس کیدونکے فوځ د سر جان کین کمانډر انچیف د لاندې هندوستان ته واپس روان شو.

په انګلستان کښې د مهم په کامیابئ سر ته رسیدو باندې بیشماره ډیرې خوشحالي وشوې. بادشاه انګلستان د لویو لویو افسرانو د خدماتو په صله کښې هغوي له خطابونه ورکړل. چنانچه لارډ آکلینډ له د "ارل" او سر جان کین له د "بیرن کین آف غزني" او میکناټن ئې "بیرونټ" کړو او د سر خطاب ئې ورله ورکړو. او په تاریخ کښې د سر ولیم میکناټن بیرونټ په نوم مشهور شو. نورو وړو وړو افسرانو له واړهٔ واړهٔ خطابونه ورکړے شول.

اوس مونږ د دوست محمد خان د تیښتې قصه مختصر طور باندې بیانوو. لکه څرنګ چې وړومبے ذکر شوے دے امیر صاحب د بامیان نه پړاو په پړاو په ډیر شتاب قلعه سرسنګ ته ورسیدو او محمد علي بیګ چې یو ازبک خان وهٔ په دې مقام باندې د دوست محمد خان په خدمت کښې حاضر شو او یو ډیر ښکلے اس ئې هغهٔ ته په طور د پیشکش ورکړو. د سرسنګ قلعه دوست محمد خان هغهٔ ته حواله کړه او پخپله خلم ته روان شو په لاره باندې صوفي بیګ، قالچ علي بیګ او میربابا بیګ ازبک سردارانو د هغهٔ ډیر خاطر

تواضع وکړه. او دغه شان هغه خلم ته ورسیدو. میرولي حاکم خلم هغهٔ له د وسیدو دپاره یو عالي شان مکان ورکړو. د لږې دمې خوړلو نه پس دوست محمد خان خپل ټول ملګري د خپل زوي محمد اکبر خان په خیمه کښې راجمع کړل او هغوي سره ئې د خپل آئنده طرز عمل په بابت کښې جرګه وکړه. د اکبر خان دا رائ وه چې ایران ته ځو. له دې کبله دوست محمد خان خپل یو پیش خدمت محمد عظیم خان میمنې طرف ته واستولو چې د هغې طرف نه د ایران د لارې ټول حال احوال راوړي او بل طرف ته مرزا سمیع خان امیر بخارا، امیر نصرالله خان له د هغهٔ نه په بلخ کښې د استوګنې د اجازت غوښتو دپاره ولیږلو. څهٔ ورځې پس مرزا سمیع خان د امیر بخارا د یو سړې سره د بخارا نه واپس راورسیدو او دوست محمد خان ته ئې ووئیل چې د شاه بخارا دا رائ ده چې د قندوز او خلم د سردارانو دپاره دا ناممکنه ده چې هغوي امیر صاحب او د هغهٔ سړي ځان سره وساتلے شي او نهٔ د بلخ مالیه د هغهٔ دپاره کافي کیدے شي. پس کهٔ چرې امیر بخارا ته راشي نو نهٔ تش دا چې زهٔ به د هغهٔ خاطر تواضع وکرم بلکې هغهٔ له به د خپل ملک د واپس اخستو دپاره فوځې امداد هم ورکړم. اګر چې دا خبره په ظاهره خو ډیره د زړهٔ د خوړیدو وه مګر د دوست محمد خان په هغې اعتبار نهٔ کیدلو او ځان ئې د هغهٔ په قابو کښې ورکول نهٔ غوښتل. بلکې ایران ته ئې تلل غوښتل. هغه لا هم دغه شان په شش و پنج کښې وهٔ چې په خلم کښې د خوراک د غلې کمے پیښ شو. له دې کبله دوست محمد خان یو ځل بیا محمد اکبر خان، نواب جبار خان، مرزا سمیع خان او والئ خلم سره جرګه وکړه او د بیل بیل نه ئې خپله رائ وغوښتله. د اکبر خان رائ بدستور د ایران د تلو وه مګر د والئ خلم دا رائ وه چې بخارا ته تلل پکار دي.

مرزا سمیع خان د دې جرګې په دوران کښې دا خبره وکړه چې اګر چې ما د شاه بخارا د خلې نه د امیر صاحب برخلاف څهٔ نهٔ دي اوریدلي مګر د هغهٔ د وزیر نور محمد بیګ د خلې نه په خبرو کښې دومره ټکي ما اوریدلي دي چې د کابل بادشاهي اوس خپلو اصلي وارثانو له په لاس ورغله. او امیر دوست محمد خان خو صرف یو غاصب وهٔ په دې سبب زما دا رائ ده چې د یو مناسب موقع په انتظار کښې مونږ له هم په دې ځائے کښې په ارام پاتې کیدل پکار دي. د نواب جبار خان، د والئ خلم او د محمد عظیم خان پیش خدمت دا رائ وه چې د ایران په لاره ناقابل برداشت مشکلات دي او واوره د اوس نه پریوتل شروع شوي دي. پس مناسب دا دي چې مونږ بخارا ته لاړ شو اخر د ډیر فکر نه پس دوست محمد خان بخارا ته د تلو فیصله وکړه چونکې هغهٔ سره دا وخت د لارې د خرڅ دپاره روپۍ هم نهٔ وې له دې کبله هغهٔ د خپل کور کالي والئ خلم سره ګانه کړل او شپږ زره روپۍ ئې د هغهٔ نه قرض واخستې او څوارلس زره روپۍ هغهٔ له محمد اکبر خان ورکړې. بیا هغهٔ د خپل کور خلق په خلم کښې پریښودل او په خپله سره د نواب جبار خان او د ټولو زامنو د دریائے آمو په طرف

روان شو په بلخ کښې د هغه ځاے ګورنر د هغهٔ ډیر په عزت سره استقبال وکړو. او قریباً د پنځو سوؤ روپو یوه تیلۍ ئ هغهٔ ته نذرانه پیش کړه. نواب جبار خان په مزار کښې پاتې شو او د مخکښې تلو نه ئ انکار وکړو.

د دې نه پس دوست محمد خان قرشي ته او د قرشي نه قراول ته راورسیدو په قراول کښې د شاه بخارا ټول اراکین سلطنت د دوست محمد خان سترې مشي له بهر ته راووتل او د بادشاه د طرف نه هغهٔ ته درخواست وکړو چې هغه دې سره د خپلو نوکرانو د بادشاه ملاقات ته لاړ شي. دوست محمد خان نیغ د بادشاه دربار ته د سلامۍ دپاره لاړو او پس د هغې نه کوم ځاے چې د هغهٔ دپاره مقرر شوے وۀ. هغه ځاے ته هغه سره د خپلو زامنو واپس راغلو. قریباً پنځو ورځو دپاره شاه بخارا په ډیر عزت د هغوي د ډوډۍ انتظام د خپلې باورچي خانې نه وکړو. او په شپږمه ورځ ئ د مرزا خان نومے یو قاصد په ذریعه د دوست محمد خان نه تپوس وکړو چې ستا اصلي مدعا څهٔ ده؟ دوست محمد خان ورته په جواب کښې ووې چې ړوند د خدایه څهٔ غواړي خو دوه سترګې غواړي زما نور غرض د دې نه بل نشته چې بادشاه ما سره امداد وکړي او زۀ د خپل سلطنت نه د خپل دین دشمنان وباسم.

شاه بخارا ورته ووې چې اوس في الحال تۀ ځان دمه کړه او چونکې ژمے راروان دے نو دا به ښه وي چې صرف دوه سوه تنه سرې ځان سره پریږده او باقي نوکران په وړو وړو ټولو کښې په چارچاپیره کلو کښې وویشه هر کله چې اوړے شي نو بیا به ستا مدعا باندې غور وکړم. نور هغهٔ ته شاه بخارا ووئیل چې د خپل کور خلق د خلم نه دې ځاے ته راوله.

امیر صاحب بیا د خپلو ملګرو جرګه وکړه او خپله رائ ئ ورته ښکاره کړه چې کۀ چرې ما د بادشاه په دې رائ باندې عمل وکړو نو دا به ما دپاره د خطرې نه خالي نۀ وي. د هغهٔ نورو ملګرو هغهٔ ته په جواب کښې ووې چې تۀ د بل قوم په ملک کښې شرونے ئ دا به مناسب وي چې تۀ د هغوي په وینا پسې لاړ شے. امیر د هغوي خبره ومنله او قریب وه چې بادشاه ته ئ د دې خبرې ذکر کړے وے چې قاضي بدرالدین راوړاندې شو او هغهٔ ته ئ ووې چې په دې معامله کښې تۀ د شاه بخارا خبره مۀ منه. کۀ چرې یو ځل ستا د کور خلق د هغهٔ په لاس کښې راغلل او ستا ملګري ستا نه یو خوا بل خوا خوارۀ شول نو ستا پښتانۀ ملګري به د ټول عمر دپاره د قزلباشو په شان د ازبکو مریونه شي. امیر صاحب د قاضي بدرالدین رائ سره اتفاق وکړو او بادشاه ته ئ جواب ورکړو کۀ چرې شاه بخارا مونږ پښتنو سره د میلمستیا سلوک کول غواړي نو زما د هغهٔ په خدمت کښې دا سوال دے چې ما له دې د دریائے آمو نه پورې غاړه بلخ طرف ته څهٔ زمکه زما او زما د سړو د ګزارې دپاره راکړي او کۀ چرې بادشاه ته زما دا سوال منظور نۀ وي نو ماته دې د حج د تلو اجازت راکړي.

شاه بخارا د امیر په دې خبره ناراض شو او ورته ئ ووې چې کۀ چرې زما په خبره

عـمـل نـهٔ کوے نو چرته چې دې خوښه وي هغه خوا ځه. امیر صاحب په دې خبره د حج د تلو دپـاره تیاري شروع کړه او د ښار نه ئ بهر خیمې ولګولے مګر سحر د وخته شاه بخارا هغهٔ ته سړے راواستولو چې سمدستي د دې ځاے نه ووځه. او د چار جوئ په ځاے د خیوا په طرف روان شـه. دوست محمد خان په دې ډیر حیران او پریشان شو او شاه ته ئ جواب ولیږلو چې د خیـوا پـه ریګستـانـونـو کښـې به په مونږ کښې یو کس هم ژوندے پاتې نهٔ شي او کهٔ چرې بـادشـاه خفه شوے وي نو مونږ د هغهٔ نه معافي غواړو او آئنده به مونږه هم د هغهٔ په صلاح کار کوؤ. شاه بخارا دوباره هغهٔ ته د بخارا د راتلو اجازت وکړو او یو ډیر لږ رقم ئ د امیر صاحب د ګزارې دپاره مقرر کړو.

پـه دې اثـنا کښې امیر دوست محمد خان ښکلي ښکلي اسونه او لس تورې او یو څو پیـش قبـضـې پـه طـور د پیشکـش ولیـږلے. د دې په بدل کښې بادشاه هغهٔ ته پنځهٔ خلعتونه راواستـول مـګـر امیـر صـاحـب تـه ئ بیا سوال جواب وکړو چې سمدستي خپل زوے محمد افـضـل خان د خپل کور په خلقو پسې خلم ته ولیږه. په حقیقت کښې د شاه بخارا دا غرض د امیـر صاحب سره دهوکه کول وو مګر چونکې محمد شاه د ایران بادشاه هغهٔ ته پیغام رالیږلے وهٔ چې کـهٔ چـرې امیـر دوست محمد خان ته څهٔ نقصان پیښ شو نو زهٔ به د هغې ذمه وار شاه بـخـارا ګـنـم. او ټـول مـلـک به ستا لوټې لوټې کړم. په دې وجه هغهٔ دا مسوده په زړهٔ کښې جوړه کـړه چـې ورو ورو زهٔ دوسـت مـحـمـد خـان خـپـل قابو کښې راولم او کهٔ چرې د شاه شـجـاع او د انګریزانو پښې په افغانستان کښې ولګیدے نو زهٔ به دوست محمد خان.مړ کړم. او لا بـه ئ فیـرنـګیـانـو ته حواله کړم. چونکې دوست محمد خان هم د هغهٔ په نیت پوهه وهٔ د دې دپاره محمد اکبر خان او هغه دواړه د دوست محمد خان د کور د خلقو د خلم نه بخارا ته د راوستـلـو سـخـت خـلاف وهٔ. چـنـانـچـه اکبر خان سره د خپلو ورونو شهر سبز ته په پټه د تښتیـدو اراده وکړه او یو څو ورځې پس هغوي وتښتیدل. مګر شاه بخارا چې خبر شو نو هغهٔ چـارچـاپیره په خپله علاقه کښې د هغوي د ګرفتارۍ دپاره حکمونه ولیږل. د اکبر خان دوئ نه د بدې ورځې نه لار خطا شوه او په قرشي باندې راوختل په هغه ځاے کښې په هغوي باندې دوه ګـډبـانـهٔ پیـښ شـول. چـې په هغوي کښې یو تن خو هغوي ته سمه لار وښودله مګر بل د هـغـوي په سر نور محمد بیګ د قرشي ګورنر ته مخبري وکړه. هغهٔ د دریو زرو سورو سره د اکبـر خـان د نیـولو دپاره ووتلو. او د شهر سبز د علاقې په خواوشا کښې ئ لاندې کړل. نور مـحـمـد بیګ هـغوي ته ووئیل چې ستاسو په دې طریقه د بادشاه د اجازت نه بغیر د بخارا نه راتښتیدل زمونږ د بادشاه سپکاوے دے نو ښکار دي چې تاسو واپس لاړ شئ.

اکبر خان په دې خبره څهٔ رضامندي ظاهره کړه خو نور محمد بیګ ته ئ ووئیل چې مـونـږ یوه شپه دلته کښې پرېږده د شپې اکبر خان او د هغهٔ ملګرو په خپلو کښې جرګه وکړه

او سحر ئ وسله واخسته او په اسونو سوارهٔ شول او په ازبکو باندې چې د هغوي په مخه کښې پراتهٔ وو ناساپه راوختل. يوه سخته خونريزه جګړه د هغوي په منځکښې وشوه. د ازبکو ډير سرې قتل شو ولې چونکې هغوي په شما رکښې ډير زيات وو په دې وجه د اکبر خان هم قريباً پنځلس تنه مړهٔ شول. او اخر اکبر خان ئ سره د ملګرو ګرفتار کړو. نورمحمد بيک د شاهي حکم مطابق هغوي تهول بخارا ته وليږل چنانچه بادشاه هغوي ته حکم وکړو چې د مخکښې دپاره بيا خپل پلار سره وسيږی.

د دې نه يو څو ورځې پس بادشاه دوست محمد خان ته بيا ووئيل چې لا خو زما ملکرتيا پريږده او لا د خپل کور خلق پريږده. دوست محمد خان ورته ووې چې زما د کور خلق ټول نواب جبار خان سره دي. او کهٔ چرې زهٔ هغهٔ ته سوال جواب هم وکړم نو هغه به زما د کور خلق بخارا ته راونهٔ ليږي. بادشاه ورته ووئيل چې تهٔ يو خط د خپل خاص نوکر په لاس هغهٔ ته وليکه نو کهٔ چرې بيا هم هغهٔ ستا د کور د خلقو د راوستلو نه انکار وکړو نو تاته به څهٔ ګناه نهٔ وي. دوست محمد خان يو خط د خپل سرې په لاس خلم ته نواب جبار خان له واستولو مګر هغهٔ ته ئ پټ پيغام وليږلو چې جبار خان ته ووايه چې د کور ټول خلق په څهٔ چل د ازبکو د علاقې نه په ډډه کړه.

ديخوا شاه بخارا هم والئ خلم او د قندوز مير ته خپل سړے وليږلو چې نواب جبار خان سره د دوست محمد خان د کور د خلقو سمدستي راوليږئ. مګر څهٔ وخت چې جبار خان ته د شاه بخارا او دوست محمد خان سرې ورسيدل نو هغهٔ انکار وکړو او دغه شان د هغوي سرې ناکام واپس راغلل.

اوس نصر الله خان د دوست محمد خان د مرګ بنا په يوه داسې طريقه وکړه چې په هغهٔ څهٔ الزام رانهٔ شي. چنانچه هغهٔ خپل ځان د دوست محمد خان د کور د خلقو په نهٔ راتلو ډير خفه کړو. او هغهٔ ته ئ ووې چې سمدستي د بخارا نه سره د خپلو سړو وځه او خپل سرې ئ ورسره کړل چې د چارجوئ لارې ته ئ وباسي. څهٔ وخت چې هغوي ټول د دريائے آمو غاړې ته راورسيدل نو د بخارا د بادشاه نوکر امير صاحب او د هغهٔ زامن او خپل خپلوان په يوه کشتئ کښې کښينول او د نوکرانو په حلقه ئ هغهٔ ته ووئيل چې هغوي به بله کشتئ کښې تاسو پسې درپورې وځي. دوست محمد خان دا تجويز نامنظور کړو او په دې خبره باندې لا د هغهٔ او د شاه بخارا د سړو په منځکښې خبرې اترې کيدے چې د کشتئ ماڼکي په ترکي ژبه کښې د شاه بخارا سړي ته ووئيل چې تهٔ د کشتئ نه کوز شه د دې اصلي مدعا دا وه چې هرکله د شاه بخارا سړے کوز شي نو موږ به کشتئ زر اوبو ته کړو او په منځ سيند کښې به ئ ډوبه کړو او بيا به ووايو چې کشتئ اتفاقاً ډوبه شوه. مګر دوست محمد خان په ترکي ژبه باندې پوهه وهٔ خو چې څهٔ وخت د شاه بخارا نوکر د کشتئ نه کوز شو نو دوست

محمد خان هم ورسره سم کوز شو او بیا واپس بخارا ته لاړ. اوس دوست محمد خان په ډیره تنګدستي کښې په بخارا کښې وسیدو. څو ورځې پس د بخارا ازبک د امیر صاحب په دې حالت باندې ډیر رنجیده خاطر شو او یوه ورځ ئ په جماعت کښې سرونه سرتور کړل او د دوست محمد خان دپاره ئ دعا وغوښته بادشاه چې دا واؤریدل نو د دوست محمد خان په هر دلعزیزی باندې ویریدو او حکم ئ وکړو چې دوست محمد خان او د هغهٔ زامن دې بیا په جماعت کښې مونځ نهٔ کوي. او نهٔ دې د کوره وځي. دغه رنګ دوست محمد خان او د هغهٔ زامن محمد اکبر خان او محمد افضل خان او مرزا سمیع خان په خپل کور کښې بندیوان شول.

هر کله چې د ایران بادشاه، د شاه بخارا دوست محمد خان سره د دې سلوک نه خبر شو نو هغهٔ د بخارا سفیر مقام تهران په خپله راوغوښتو او ډیره سخته زورنه ئ ورته وکړه په دې باندې شاه بخارا هغوي د بند نه ازاد کړل. او دمیاشتې د خرخ دپاره ئ څهٔ روپی هغوي له مقرر کړې. هغهٔ له ئ د ورزش دپاره د سورلی او د مانځهٔ دپاره د جماعت ته د تلو اجازت ورکړو. په دې اثنا کښې سردار محمد افضل خان ناجوړه شو او شاه بخارا هغهٔ له خلم ته د خپل کور خلقو سره د یو ځاے کیدو اجازت ورکړو. اوس امیر صاحب د بخارا نه د تښتیدو بنا وکړه. یوه ورځ د ماښام د مانځهٔ نه پس هغهٔ محمد اکبر خان، سلطان علي او علي الله وردې مستوفي جرګه کړل او د تښتیدو بندوبست ئ جوړ کړو. هغوي دا فیصله وکړه چې ټول په جمع او په یو طرف تښتیدل درست نهٔ دي پکار دي چې محمد اکبر خان او سلطان علي او یو نوکر د اندخوئ په لاره وتښتي او دوست محمد خان او الله وردي سره د یو سړي شهر سبز ته وتښتي. په دا شان کهٔ چرې یو ټولے را ایسار شو نو بل ټولے به خلاص شي. په. دغه شان دوست محمد خان سره د خپلو ملګرو شهر سبز ته روان شو مګر د بدې ورځې نه د هغوي نه لار خطا شوه او په داسې ورانو ویجاړو باندې سر شول چې د ستومانی نه ئ د سورلی اس هم مړ شو. مګر د خوش قسمتی نه په لاره کښې هغوي یوې قافلې سره ملګري شول چې په هغې کښې په اوښانو باندې دواړه طرف ته د میوو ټوکری وے په دې ټوکرو کښې امیر صاحب او د هغهٔ ملګري پټ شول. د چراغ شي په مقام باندې د حکومت بخارا نوکرانو دا قافله د امیر صاحب په تلاش کښې لټ په لټ کړه ځکه چې هغوي ته دا پته اطلاع رسیدلے وه چې دوست محمد خان هم په دې قافله کښې پټ دے. مګر هغوي باوجود د تلاشی نه دوست محمد خان بیا نهٔ موندو. او دغه شان هغه د بخارا د ازبکو د پنجې نه ازاد شو او د شهر سبز په خواوشا کښې تکیه نومے کلي ته راورسیدو. محمد اکبر خان او سلطان جان لا هم هغه شان په بخارا کښې وو. په تکیه کښې کبیر خان نومے یو سوداګر هغهٔ له جامې او نور ضروري سامان د ګزارې دپاره ورکړو. او بیا ئ د شهر سبز حاکم ته د خپلو راتلو خبر

وکړو. حاکم شهر سبز قریباً یو زر سورو سره د هغهٔ استقبال له راووتو او په ډیر قدر او عزت سره ئ خپل محل ته راوستو. شاه بخارا سمدستي د شهر سبز د حاکم په نوم یو خط راولیږو چې دوست محمد خان فوراً بخارا ته راولیږئ او کهٔ دا نهٔ شے کولے نو کم نه کم د خلم په طرف ئ تللو ته مهٔ پریږده. مگر هغهٔ ورته په جواب کښې ولیکل چې زمونږ د وطن دا رواج دے چې میلمنو سره مونږ د بې وفایئ سلوک هیچرې نهٔ کوؤ او څومره چې زمونږ وس وي د هغوي قدر و منزلت کوؤ دا صرف د بخارا د بادشاه دستور دے چې میلمنو سره بې لوظي او بې وفائي کوي. زهٔ چې څهٔ مناسب وي امیر دوست محمد خان سره به هغه شان سلوک کوم.

د یو څو ورځو د ارام نه پس امیر دوست محمد خان د شهر سبز نه رخصت شو مگر د شهر سبز حاکم د هغهٔ د حفاظت دپاره د سورو یوه دسته او د هغهٔ د خپلې سورلۍ دپاره یو ډیر ښکلے اس د یوې تورې او د لارې د خرڅ واستولو. د دې نه پس هغهٔ د حصار په خوا کښې راتیر شو او صحیح سلامت د دریائے آمو نه راپورې وتلو. والئ خلم د هغهٔ استقبال له راغے او د هغهٔ په رارسیدو باندې ډیر خوشحاله شو. په خلم کښې هغوي بیا ډیرې جرگې وکړې او په کابل باندې ئ د خپل قسمت ازمایئ دپاره تجویزونه جوړ کړل. والئ خلم چارچاپیره د روپو د سورو او د لښکرو د جمع کولو دپاره کوششونه شروع کړل. او د مزار او قندوز د خانانو نه ئ ډیر امداد حاصل کړو. دې لښکر سره هغه د بامیان په طرف راروان شو او میر بابا بیگ ئ چې د والئ خلم ورور وهٔ مگر د فیرنگیانو دوست وهٔ د هیبک د حکومت نه وویستو.

وړومبے د دې نه چې مونږ د دوست محمد خان او د هغهٔ د زامنو د کابل په طرف د پیش قدمئ قصه په تفصیل سره وکړو نو پکار دي چې خپلو لوستونکو ته دا بیان وکړو چې د افغانستان د فتح کولو نه پس په تیر شوي یو کال کښې د فیرنګیانو او د شاه شجاع د حکومت څهٔ حال وهٔ. د کومو واقعاتو چې په تفصیل سره د فیرنګیانو او د شاه شجاع افغانستان ته د راتلو په وخت په وروستو صفحو کښې ذکر شوے دے د هغې نه به لوستونکو ته دا معلومه شوے وي چې پښتنو د قامولئ په حیثیت نهٔ د فیرنګیانو اؤ نهٔ د شاه شجاع د راتلو په کلکه څهٔ مقابله کړې وه. د هغې وجه دا وه چې د ډیرې زمانې نه د عامو خلقو په زړهٔ کښې دا خیال وهٔ چې سدوزي د افغانستان د تاج و تخت اصلي وارثان دي او بارکزو په ناجائزه طریقه باندې د خاص واقعاتو په وجه په هغې باندې قبضه کړې ده. چنانچه لوستونکو ته به یاد وي چې څهٔ وخت د فتح خان ورونو د احمد شاه مرحوم نمسي تول د افغانستان د لویو لویو صوبو نه وویستل نو د هغوي خپل هم په ابتدا کښې د افغانستان د بادشاه کیدو نیت نهٔ وهٔ او تر ډیرې مودې پورې امیر دوست محمد خان په خپله په دې شش و پنج کښې وهٔ چې باقاعده طور باندې د بادشاهي لقب اختیار کړم او کنه؟ مگر څهٔ وخت چې د سدوزو د خاندان

ناقابلیت قوم او ملک ته ښکاره شو نو هغوي دوست محمد خان په دې مجبور کړو چې تهٔ اوس ځان د افغانستان بادشاه کړه. مگر بیا هم هغهٔ د شاه لقب اختیارولو په ځاے خپل ځان امیر کړو. هرکله چې فیرنگیانو شاه شجاع ځان سره د خپل فوځې طاقت او د خپلو خزانو په زور افغانستان ته راوستو نو هغوي ځاے په ځاے دا اعلانونه وکړل چې زمونږ په افغانستان باندې قبضه کول مطلب نهٔ دے بلکې د شاه شجاع د خپل پلار نیکهٔ په ملک کښې ځاے کول دي. او هرکله چې هغه په خپل سلطنت کښې مضبوط شي نو مونږ به بیا هندوستان ته واپس لاړ شو. د عامو خلقو او د قبائلو د سردارانو دا یقین راغے چې لکه څرنگ همایون د ایران بادشاه په امداد سره د هندوستان تخت واپس اخستے وهٔ او لکه څرنگ چې بابر د شاه اسماعیل شاه ایران په امداد سره د فرغانه حکومت حاصل کړے وهٔ دغه شان انگریزان هم خپل میلمه شاه شجاع د کابل په تخت کښینول غواړي. او څهٔ وخت چې په ملک کښې قلاره قلاري شوه نو انگریزي فوځ به خپل ملک ته واپس لاړ شي. اگرچې دوست محمد خان ډیر په ښهٔ شان سره پوهه وهٔ چې دا ټوله خبره دروغژنه او غلطه ده او دا خو فیرنگیانو صرف د خلقو د شکوکو د رفع کولو دپاره راپیدا کړې ده. او هغهٔ خلقو ته دا په بار بار وئیلي وو چې فیرنگیانو شاه شجاع افغانستان ته د دوستۍ په وجه هرگز نهٔ دے راوستے بلکې د هغوي اصلي مدعا په افغانستان کښې خپل سیاسي اقتدار قائمول دي. شاه شجاع خو صرف د هغوي آلهٔ کار دے. مگر د فیرنگیانو روپۍ او د شاه شاع د ملگرو غلطه پروپیگنډه دا شان طاقتور ثابت شول چې د هغهٔ په خبره هیچا غوږ کښینښودو. او دغه اصلي وجه وه چې نهٔ د شاه شجاع او نهٔ د انگریزانو چا د زړهٔ د اخلاصه څهٔ مقابله وکړه د عامو خلقو دا گمان نور هم مضبوط شو هرکله چې هغوي ولیدل چې د انگریزي فوځ ډیره حصه لارډ کین او سرکلاډویلډ سره واپس هندوستان ته لاړه.

یوه بله خبره د خلقو د مقابلې د نهٔ کولو دا هم وه چې د کابل خلق د دوست محمد خان د زبردست طرز حکومت او د هغهٔ د سخت اصول، انصاف نه چې لږ ډیر تنگ شوي وو مگر په دې وجه هغهٔ ته څهٔ قابل ذکر اندروني بغاوت نهٔ وهٔ شوے. خو بیا هم هغوي د شاه شجاع او د فیرنگیانو په راتلو تر ډیره حده پورې خوشحاله وو. ولې د دوه دریو میاشتو د انتظار نه پس څهٔ وخت چې په چارچاپیره ملک کښې امن و امان قائم شو او د ټولې علاقې خوانینو د شاه شجاع اطاعت قبول کړو او بیا هم د فیرنگیانو پولیټیکل افسران سره د ولیم میکناټن او د سر الیگزنډر برنس او د نورو ډیرو فوځي افسرانو د کابل او د کابل د خواوشا نه لا نهٔ رړل. چنانچه سر الیگزنډر برنس د کابل د ښار لفټیننټ گورنر مقرر شو او میکناټن د بادشاه د حکومت عامه پالیسي په خپل تسلط کښې واخسته او د فیرنگیانو د فوځ څهٔ دستې په بیله بیله علاقه کښې مستقل طور باندې دیره شوې نو د هغوي په زړونو کښې د فیرنگیانو

په باره کښې ورو ورو شکونه پیدا شول. اګر چې په ظاهره د حکومت ټولې محکمې د پښتنو او د قبائلو د سردارانو په لاس کښې وې مګر د محکمې هر یو پښتون افسر سره فیرنګیانو خپل یو پولیټیکل افسر په هره علاقه کښې مقرر کړے وۀ او د سلطنت یو کار به هم د هغوي د منظورۍ نه بغیر نۀ فیصله کیدو . څۀ وخت پورې خو هغوي په دې صبر وکړو ولې د پښتنو خودداری او د هغوي غیرت د نورې عرصې دپاره دا خبره نۀ شوه زغملے چې ملک دې زمونږ وي افسران دې مونږ یو او اصلي اختیارات دې د غیرو خلقو په لاس کښې وي بادشاه هم پوره طور سره د میکناټن په لاس کښې وۀ اګرچې په ظاهره به احکام د بادشاه د دستخط لاندې وتل مګر په حقیقت کښې به هغه ټول احکام د میکناټن احکام وو او بادشاه ته به په هغې کښې د ردوبدل هیڅ اختیارات نۀ وو. ډیرې لږې ورځې پس د شاه شجاع د دربار ټول امراء او وزراء په دې خبره پوهه شو او عام طور سره دا چرچه وشوه چې بادشاه خو بالکل بې اختیاره د فیرنګیانو په لاس کښې یوه ګوډۍ ده. هر څۀ چې فیرنګیان غواړې هغه کیږي او د بادشاه ځان له هیڅ واک نشته. اخر کار د کافي صبر نه پس دې امیرانو او سردارانو بادشاه ته د انګریزانو د دې طرز عمل برخلاف ډیر سخت شکایت وکړو او ورته ئې صاف صاف ووئیل چې فیرنګیانو دا اقرار کړے وۀ چې څۀ وخت تۀ په تخت کښېنې نو هغوي به ټول واپس لاړ شي مګر اوس د حکومت ټولې واکې د هغوي په لاس کښې دي. او ستا هیڅ اختیار پاتې نۀ شو.

انګریزانو چې څۀ وخت خپل ځان مضبوط وګڼلو او ورته دا معلومه شوه چې د افغانستان په هر طرف کښې اوس مونږ کافي فوځونه ډیره کړي دي او ټول د فوځي اهمیت ځایونه زمونږ د فوځ په لاس کښې دي او د افغانستان ځان له هیڅ څۀ باقاعده فوځ زمونږ د مقابلې کولو دپاره موجود نشته نو هغوي هغه ټولې لویې لویې وعدې چې هغوي سردارانو سره د جاګیرونو پنشنونو د انعاماتو او اکراماتو کړے وې هغه ټولې هغوي ماتې کړې. او لویو لویو خلقو سره ئې سپکاوے او د سختۍ سلوک شروع کړو. د انګریزانو دا رویه څۀ ډیره د حیرانتیا نۀ وه د همیش دپاره څۀ وخت چې یو قوم د بل چا د ملک د فتح کولو اراده وکړي نو د فوځ کشۍ نه وړومبے هغوي د هغې ملک عام رعیت سره او د هغې ملک لویو لویو بااثره سردارانو سره د ډیر نیک سلوکۍ او د خیر ښیګړو د کولو او د عام حالت د ښۀ کولو وعدې وکړي او په هر قسم خوشامدو او وعدو باندې هغوي ځان طرف ته د را اړولو کوشش کوي مګر هر کله چې هغه ملک فتح شي او د هغۀ ازادي وشوکیږې نو حاکم قوم د همیش دپاره د طاقت او د زور په نشه کښې خپلې ټولې کړې وعدې او اقرارونه هیر کړي. او محکوم قوم سره هر څومره ډیره موده چې تیریږي نو سخت ناجائز او د بې عزتۍ سلوک رواخلي. هم دغه شان څۀ وخت چې فیرنګیانو د سردارانو شاه شجاع ته دا شکایتونه کول

واوريدل نو په ظاهره خو ئ څۀ ونۀ وئيل. مګر د هغوي نومونه ئ ځان سره وليکل او اراده ئ وکړه چې په يوه موزونه موقع باندې به د دوئ نه بدل اخلو او ورو ورو دا خبره هم مشهوره شوه چې حاجي خان کاکړ په شان د فيرنګيانو دا نيت دے چې ټول لوے لوے سرداران ګرفتار کړي او هندوستان ته ئ جلاوطن کړي.

د دې نه علاوه فيرنګيانو د افغانستان د اندروني انتظام دپاره د فوځونو په تنظيم او ترتيب کښې د افغانستان د رواج برخلاف قسم قسم نوې لارې راوويستې چې د هغې په وجه هم د قبائلو سرداران د فيرنګيانو نه سخت ناراض شول کپتان ټيلر او کپتان ټريور په ظاهره خو د شاه شجاع د فرمان د لاندې د فوځونو د برتي کولو په کار باندې مقرر شول. چنانچه هغوي د سردارانو په نوم باندې احکام جاري کړل چې هر يو سردار چې سره د خپلو خپلو ملاتړو زمونړ د معائنې دپاره زمونږ په مخکښې تير شي. په دې غرض چې څوک د برتي کيدلو قابل دي چې هغه برتي کړې شي او باقي کسان وويستې شي. په دغه طريقه هغه ټول خلق چې سر کلاډويډ او شهزاده تيمور په پيښور او د هغې په چارچاپيره علاقو کښې افغانستان باندې د پيش قدمۍ کولو دپاره د مختلفو سردارانو د مشرۍ د لاندې برتي کړې وو او هغوي سره د لويو لويو تنخوا ګانو او د عهدو اقرارونه شوي وو او هغوي په درۀ خيبر او د افغانستان په مختلفو ضلعو کښې قابل قدر خدمات کړي وو او د هغې په عوض کښې سر کلاډويډ او د هغۀ ماتحت افسرانو هغوي له لوے لوے سرټيفيکيټونه ورکړي وو دغه اکثر خلق دې افسرانو د فوځ نه وويستل او د هغوي موجودګي ئ په فوځ کښې غير ضروري وګڼله. دې واقعې هم د خلقو په زړۀ کښې د فيرنګيانو متعلق دا بدګماني پيدا کړه چې څۀ وخت د دوئ غرض وشي نو بيا دوئ د خپلو اقرارونو نه بغير سرے په دهوکه کندې ته ګوزار کړي.

شاه شجاع هم اوس د انګريزانو د دومره وسيع اختياراتو د استعمالولو نه سخت تنګ راغلے وۀ او دا ئ غوښتل چې انګريزان دې اوس زما د ملک نه لاړ شي. هر کله چې عامو خلقو ته په خپل روزانه ژوندون کښې دا ثابته شوه چې اصلي واک او اختيار د انګريزانو لاس کښې دے نو هغوي د بادشاه نه بالکل لا پروا شول او په هره يوه معامله کښې به ئ انګريزان د ملک حاکمان ګڼل. بادشاه ته خپل ځان په دې خبرو ډير سپک ښکاره شو. په دې سبب هغۀ ورو ورو د خپلو اختياراتو د استعمالولو تکل شروع کړو. د دې لازمي نتيجه دا شوه چې د فيرنګيانو او د هغۀ په منځکښې په دې خبره اختلافات پيدا شول. فيرنګيانو په هيڅ شان دا نۀ غوښتله چې شاه شجاع دې خپل شاهي اختيارات استعمال کړي. هغوي د هغۀ افغانستان ته په راوستو ډيرې روپۍ لګولے وے او ډير فوځونه ئ جنګولي وو پس هغوي دا خيال وکړو چې په هره طريقه وي چې مونږ دا خپل نقصانات او اخراجات د افغانستان نه پوره

کړو. چنانچه د درآمد او برآمد په څیزونو باندې د محصول د ټولولو اختیارات او د کابل د ښار د محصول چونګې واک او د مالیو او د نورو ټیکسونو لګولو ټول انتظام فیرنګیانو په خپل لاس کښې واخستو. سر الیګزنډر برنس چې د کابل د ښار لفټیننټ ګورنر وۀ هغۀ د درآمد په ټولو څیزونو باندې محصول چونګې صرف د دې دپاره کم کړو چې انګریزي مال په کثرت سره افغانستان ته راشي. او د ملک اندروني صنعتونه د انګریزي څیزونو په مقابله کښې ورک شي. مګر شاه شجاع هم په دې پوهیدو چنانچه هغۀ خپلو سړو ته د برنس د مقرر شوي نرخ نه د زیاتي محصول د ټولولو احکام جاري کړل. سوداګرانو انګریزانو ته شکایتونه شروع کړل او برنس به هغه سوداګران د بادشاه وزیر ته واستول. وزیر به هغوي له په دې خبره سزا ورکړه چې تاسو د بادشاه په ځاے فیرنګیانو ته ولې شکایت له ځئ. د دې دوه عملۍ په وجه خلق هم بیشانه ډیر پریشانه وو.

په دې ورځو کښې ملا شکور د شاه شجاع وزیر وۀ چې د ابتدا نه هغۀ سره په جلاوطنۍ کښې ملګرے وۀ. او هر قسم مصیبتونه ئ هغۀ سره تیر ګړي وو. دا سړے د شاه شجاع ډیر وفادار وزیر وۀ. د هغۀ منشا دا وه چې په څۀ طریقه باندې شاهي خزانه ډکه شي. د اتحاد ثلاثه د عهدنامې د لیکلو په وخت کښې دې بادشاه سره موجود وۀ او هغۀ ته دا معلومه وه چې د دې لوظنامې په رُو سره فیرنګیانو ته د ملک په اندروني معاملاتو کښې د دخل ورکولو اختیار نشته. او فیرنګیان هر څۀ چې کوي صرف د بادشاه او د قوم د کمزوري حالت او د بې وسۍ نه ناجائزه فائده اخلي. او د خپل قوم د سوداګرانو د ښیګړې دپاره د افغانستان د خلقو او د شاه شجاع نقصان کوي.

ملا شکور اوس هر وخت په دې کوشش کښې لګیا شو چې په هر شان وي زۀ د بادشاه اختیارات او طاقت په ملک کښې قائم کړم. او دا قوم ته وښیم چې د افغانستان اصلي حاکم او بادشاه شاه شجاع الملک دے نه چې میکناټن او برنس. پس هر څوک به چې د بادشاه اود ملا شکور برخلاف فیرنګیانو ته په فریاد لاړو او فیرنګیانو به هغوي له سفارشي چیټۍ چې هغې ته حکم نامه وئیل پکار دي د دادرسۍ دپاره ورکړې نو ملا شکور به هغوي راونیول او ښۀ به ئ وټکول او په بندي خانه کښې به ئ واچول. دغه شان د بادشاه او د فیرنګیانو په منځکښې په صفا طریقه باندې ناراضګي او اختلاف پیدا شو. کوم سرداران چې به د فیرنګیانو خوښ وو او میکناټن او برنس به هغوي له د بادشاه په نوم باندې د انعام او د جاګیر چیټۍ ورکړې نو ملا شکور به هغوي ته په بدنظر کتل. او د هغې رقم د وصولولو دپاره به ئ لرې لرې کلو ته ولیږل او کومو سردارانو له به چې شاه شجاع څۀ جاګیر یا انعام ورکولو نو ملا شکور به هغوي له په نزدې نزدې کلو حواله ورکړه.

غلام خان پوپلزے د فیرنګیانو په وینا شاه شجاع یو ځل د څۀ جګړو د فیصلو دپاره

چاریکار ته واستولو لکه چې څنګه وړومبې ذکر شوې دې. دا سردار فیرنګیانو سره ډیر پیش پیش وۀ پس ملا شکور ډنډورچیان چاریکار ته واستول چې چونکې غلام خان د کافرو (فیرنګیانو) نوکر دې د دې دپاره غلام خان هم کافر دې او د بادشاه د تباه کولو او د ملک د ورانولو په تکل کښې دې. (موهن لعل جلد دویم مخ ۳۱۶)

څۀ موده پس ملا شکور باقاعده خپله یوه پړه په سردارانو کښې د دې غرض دپاره پیدا کړه چې شاه شجاع د فیرنګیانو د پنجې نه او د تسلط نه وباسي. چنانچه هغۀ په چارچاپیره علاقو کښې د خلقو په دماغ کښې دا خبره کښېنوله چې شاه شجاع د انګریزانو د دست درازۍ او د هغوي د بې انصافو نه تر دوۀ سپیړمو راغلے دے او په ځاے د دې چې بادشاه فیرنګیان خپل دوستان وګڼي هغه هغوي خپل دشمنان ګڼي. ځکه چې کومه عهدنامه فیرنګیانو هغۀ سره کړې ده د هغې شرطونو خلاف ورزي کوي او لا تراوسه پورې ئې د افغانستان نه خپل فوځونه ایستي نۀ دي. او بله وجه د افغانستان په اندروني معاملاتو کښې د بادشاه د مرضۍ نه بغیر دخل ورکوي. د دې نه علاوه ځاے په ځاے هغۀ خپل سړي د دې کار دپاره مقرر کړل چې په خلقو کښې دا مشهوره کړي چې څۀ وخت د شاه شجاع د کور خلق د لدهیانې نه کابل ته صحیح سلامت راورسیږي نو بادشاه به بیا بېغمه او بې فکره شي. او بیا به د خپل وفادار رعایا په امداد سره د حکومت واګې په خپل لاس کښې واخلي او خپل دوست دشمن سره به د خپلې رضا او اختیار مطابق سلوک وکړي.

د ملا شکور د دې کوششونو او د پروپیګنډې دا نتیجه شوه چې عامو خلقو ته دا ښکاره شوه چې د بادشاه او د فیرنګیانو سره په خپله کښې نۀ لګي. او فیرنګیان په رښتیا اور له راغلل نو د کور خاوندان شو. اوس ورو ورو عامو خلقو ته اصلیت ښکاره شو. او ورځ تر ورځ د فیرنګیانو برخلاف په عامو خلقو کښې نفرت پیدا کیدلو او بادشاه ئې د هغوي په لاس کښې یو غلام او قیدي ګڼلو. د جامع مسجد امامانو هم په دې وجه د شاه شجاع نوم په خطبه کښې اخستل منع کړل. ملا شکور فیرنګیانو له راغے او ورته ئې شکایت وکړو چې امامانو خو د اعلیٰ حضرت نوم په خطبه کښې اخستل پریښودل. ځکه چې د اسلام په رُو سره خطبه صرف د هغې بادشاه په نوم لوستے شي چې څوک د خپل واک خاوند او خودمختار وي. او چونکې بادشاه ستاسو د لاسه یومریے او ستاسو د مرضۍ تابع دے په دې وجه هغه خودمختار نۀ شي ګڼلے.

څۀ وخت چې دا معاملې د کابل او د هغۀ نه په چارچاپیره علاقه کښې روانې وې نو یو څو نور هم دا قسم واقعات پیښ شول چې د فیرنګیانو او د ملا شکور په منځکښې ناچاقي نوره هم زیاته شوه. یوه معامله په کابل کښې د غلې د سختې ګرانۍ متعلق وه. د دې تفصیل دا شان دے چې د فیرنګیانو د فوځ د موجودګۍ په وجه کمسریټ افسرانو د خلقو نه غله په ډیر

ګران نرخ باندې اخستله. نتيجه دا شوه چې د زمکې مالکانو به څۀ ډيره معمولي غله د خپلې ګزارې دپاره کور وساتله او نوره ټوله به ئې په انګريزي فوځ باندې خرڅه کړه دغه شان غريبانانو خلقو دپاره د غلې په بيعه اخستل بالکل ناممکن شول. په دې شان وابښۀ، غوښه، سبزي او ټول د ژوندون ضروريات دومره ګران شول او د هغې نرخونه دومره وچت شول چې عام خلق او څاروي د لوږې نه هلاک شول.

ملا شکور چې څۀ وخت دا مصيبت ناک حالت وليدو نو ډير پريشان شو او فيرنګيانو سره ئې د دې په حقله ډيرې خبرې اترې وکړې خو هغوي پرې غوږ کښېنښودو. قيمتونه به دغه شان ورځ په ورځ زياتيدل او يو عام قات پيدا شو. ماسوائې د انګريزي فوځ نه ډير کم خلق داسې وو چې په مړه ګيډه ئې ډوډۍ خوړې شوه. زرګونه خلق ګداګر شول او د برنس د کور نه د ډوډۍ غوښتلو دپاره راچاپيره شول. چنانچه هغۀ قريباً يو زر ډوډۍ هره ورځ په غريبانانو تقسيمولے. لاچار ملا شکور په ښار کښې ډنډوره وغړوله چې کۀ چا د ژوندون ضروريات د يو خاص قيمت نه په زيات نرخ باندې خرڅ کړل او لا ئې د خپلو ضرورياتو نه زياتې غله ځان سره په ګران نرخ باندې د خرڅولو دپاره جمع کړه نو هغۀ له به سخته سزا ورکړې شي. مګر چونکې د حکومت اصلي واګې د برنس په لاس کښې وے. تاجرانو او دکاندارو د ملا شکور د دې حکم هيڅ پروا ونۀ کړه ځکه چې هغوي ته معلومه وه چې فيرنګيان به سمدستي دخل ورکړي. کۀ چرې ملا شکور او د بادشاه نوکرانو سوداګران د دې حکم په منلو مجبور کړل. پس ملا شکور مجبوراً دکانداران ګرفتار کړل او هغوي ته ئې حکم وکړو چې غله په خلقو باندې په يو جائز نرخ خرڅوئ. تاجرانو په دې خبره خپل ټول دکانونه بند کړل او فيرنګيانو ته په فرياد راغلل. برنس خپل ميرمنشي موهن لعل ملا شکور ته ورولیږلو او ورته ئې سوال جواب وکړو چې دکانداران او تاجران فوراً پريږده. ملا شکور مجبور شو او د خپلې مرضۍ نه خلاف ئې هغوي ټول پريښودل. نتيجه دا شوه چې تاجرانو د خپلو جيبونو ډکولو دپاره ټولې غلې صرف د کمسريټ په افسرانو باندې د خرڅولو دپاره جمع کړې. او يوه دانه به ئې هم په غريب سړي نۀ خرڅوله په دې وجه په عامو خلقو کښې يو شور او واويلا پيدا شوه. چې فيرنګيان غريبانان خلق د لوږې نه وژل غواړي. په دې شان د فيرنګيانو برخلاف عامه بې اطميناني او زړۀ بداوے ډير پيدا شو.

يوه بله معامله چې د بادشاه او د فيرنګيانو په منځکښې د رنجش باعث شوې وه هغه د مزدورانو د مزدورۍ وه. انګريزي انجنيرانو ځاے په ځاے د فوځونو ديره کولو دپاره چاونۍ بنا کړې او مزدورانو ته به ئې ډيرې غټې غټې مزدورۍ روزانه ورکولے له دې کبله زرګونه زميدارانو خپله زميداري پريښوده او چاونو ته د مزدرو‌ۍ کولو دپاره راغلل. ملا شکور ته هم د بادشاه د مکاناتو او د باغيچو د جوړولو دپاره د مزدورانو ضرورت وۀ مګر چونکې د شاه

شجاع په خزانه کښې دومره ګنجائش نهٔ وهٔ چې مزدورانو له ئې د فيرنګيانو هومره مزدوري ورکړې وے پس يو سړے هم د هغهٔ د کار دپاره نهٔ پيدا کيدو. ملا شکور مجبور شو او خلق ئې په زور د کار دپاره راوستل. او هغوي ته ئې هم دومره مزدوري ورکوله څومره چې د ملک رواج وهٔ دا خلق هم فيرنګيانو له په فرياد لاړل او هغوي د خپل عادت مطابق په دې معامله کښې دخل ورکړو.

غرض دا چې په هره معامله کښې د ملا شکور او د فيرنګيانو اختلافات پيدا شول او چونکې ملا شکور د بادشاه خير خواه وهٔ او فيرنګبانو غوښتل چې هغه دې په هر کار کښې زمونږ حکم مني په دې سبب فيرنګيانو شاه شجاع ته د ملا شکور برخلاف شکايت وکړو. او ورته ئې ووې چې دې د خپلې عهدې نه برطرف کړه. چونکې بادشاه ته دا معلومه وه چې ملا شکور زما اصلي خير خواه دے او هغه زما د خزانې د ډکولو دپاره کوشش کوي بلکې څهٔ اختلافات چې د هغهٔ او انګريزانو په منځکښې دي په هغې کښې ملا شکور په حقه دے او فيرنګيان صرف هغه په دې وجه لرې کول غواړي. چې هغه د غلامانو په شان د فيرنګيانو هره خبره نهٔ مني په دې وجه بادشاه د هغهٔ د موقوف کولو نه انکار وکړو او فيرنګيانو ته ئې سوال جواب وکړو چې کهٔ چرې زهٔ بلا وجه ملا شکور ستاسو په وينا لرې کړم نو زما عزت او آبرو به د خلقو په سترګو کښې خاورو سره يو ځاے شي او زهٔ به په ملک کښې رسوا شم.

د شاه شجاع خفګان د فيرنګيانو نه اوس ورځ په ورځ زياتيدو ځکه چې هره ورځ به فيرنګيانو د هغهٔ د سپکاوي دپاره يو نه يو نوې کار کولو. يو ځل بادشاه په محل کښې موجود نهٔ وهٔ نو کرنل ډيني نومے يو انګريز د بادشاه يا د هغهٔ د افسر د اجازت نه بغير د شاهي محل په يو حصه کښې ديره شو. بادشاه چې څهٔ وخت راغے نو هغهٔ ميکناټن ته شکايت وکړو. چې د کرنل ډيني بغير زما د اجازت نه زما په محل کښې سکونت اختيارول زما د شاهي خودداري نه سخت برخلاف دي بلکې ښکاره په ښکاره زما بې عزتي کول دي.

څهٔ وخت چې کرنل ډيني ته د دې متعلق ذکر وشو نو هغهٔ ډير په تکبر او غرور سره دا جواب ورکړو چې زما په خداے قسم دے چې صرف يو ګورنر جنرل به ما د دې ځاے نه وباسي. د کرنل ډيني د دې غلطې او نارو رويې تائيد د هغهٔ د فوځ نورو افسرانو هم وکړو.

د ميکناټن د يو خط نه چې هغهٔ په دې ورځو کښې لارډ آکلينډ ګورنر جنرل ته ليکلے وهٔ د هغې نه هم د فوځيانو د هغې حقارت آميزې رويې پته لګي چې کومه هغوي د شاهي خاندان ممبرانو سره اختيار کړې وه :

It is with much regret, that I felt compelled to refer to Govt; a difference of opinion between myself and Sir willoughby, but if such an outrage as that committed by General Nott is to be tolerated and justified there must be an end of our efforts to make it believed that Shah Shuja is King of this country. I know how

embarrassing these references are, and I should have been happy to have saved Government the trouble of passing orders on the question, had Sir Willoughby so far supported me as to have conveyed a censure to General Nott for the deliberate and gratuituous violence which he had committed. The animus by which he had been actuated is apparent throughout................he refused to pay the Prince the common compliment of calling upon him, although told that such a civility was expected. There is, I regret to say a feeling too prevalent amongst the officers of the force against His Majesty, who is considered the sole cause of their detention here----- And I hope that though they may not be compelled to treat the Royal family with becoming respect, yet they will not be permitted to offer them a direct insult with impunity."

ترجمه : " زه په ډیر افسوس سره خپل ځان په دې مجبور ګنم چې حکومت ته د هغې اختلاف رائ حواله ورکړم چې کوم زما او د سر ولوبي په منځکښې موجود دے. ولې کۀ چرې دا شان بد کار لکه چې څرنګ جنرل ناټ نه سرزد شوے دے هغه نظر انداز کړے شي او جائز وګڼلے شي نو مونږ له بیا د دې خبرې د کوششونو خاتمه کول پکار دي چې خلق دې په دې یقین وکړي چې شاه شجاع د دې ملک بادشاه دے. ماته معلومه ده چې حکومت ته د دې قسم حوالې ورکول د هغوي دپاره څومره د پریشانۍ باعث دے ولې کۀ چرې سر ولوبي زما دومره تائید کړے وے چې هغۀ جنرل ناټ ته د هغۀ د دې تشدد نه ډک فعل متعلق د ملامتیا اظهار کړے وے کوم چې هغۀ ارادتاً او بغیر د څۀ وجې نه کړے دے نو زۀ به ډیر خوشحاله شوے وم. چې ما حکومت په داسې معامله کښې د حکم د صادرولو د تکلیف نه بچ کړے وے. په کوم بد نیت چې هغۀ دا کار کړے دے هغه د اول نه تر اخره پورې ظاهر دے. هغۀ شهزاده ته د دې معمولي آداب د ادا کولو نه انکار وکړو یعنې دا چې هغه د هغۀ د ملاقات دپاره تلے وے اګر چې ناټ ته دا ووئیلے شو چې د هغۀ نه د دې قسم د خوش خلقۍ توقع کیږي. زۀ په دې وئیلو باندې ډیر افسوس کوم چې د اعلیٰ حضرت برخلاف زمونږ د فوځ په افسرانو کښې دا خیال عام دے چې ګنې هم د اعلیٰ حضرت په سبب هغوي په افغانستان کښې په پاتې کیدلو باندې مجبور دي. پس زۀ امید کوم چې اګر کۀ د فوځ افسران په دې باندې نۀ شي مجبوریدے چې هغوي دې د شاهي خاندان خلقو سره د مناسب تعظیم سلوک وکړي مګر کم نه کم هغوي ته د دې خبرې اجازت نۀ وي چې هغوي دې هغوي سره ارادتاً د بې عزتۍ سلوک بغیر د سزا بیاموندو نه وکړي."

په دې خط باندې سر جان کے خپله حاشیه په دې الفاظو خیژولې ده :

"About this time Macnaughten had been much vexed by the conduct of General Nott, who from first to last, treated the Royal families of Kabul with the supremest contempt. Nothing could induce him to behave towards any one of them with ordinary respect. At last Macnaughten was compelled to lay his complaints

before the Supreme Government."

ترجمه : " په دې ورځو کښې میکناټن د جنرل ناټ د رویې نه سخت تنګ راغلے وۀ. چې هغۀ د اول نه تر اخره پورې د شاهي خاندان ممبرانو سره سخت د حقارت او د سپکاوي سلوک کولو. او هیچا هم هغه دې خبرې ته نشو راړولے چې هغه دې په هغوي کښې چا سره هم د یو معمولي عزت سلوک وکړي. اخر کار میکناټن په دې مجبور شو چې هغۀ خپل شکایتونه حکومت ته مخکښې کیږدي."

د دې ټولو خبرو مجموعي اثر د شاه شجاع په زړۀ دا وشو چې اوس هغۀ میکناټن ته ښکاره باقاعده طور سره پیغام ولیږلو چې په ټول ملک کښې امن و امان دے او زۀ په خیر خیریت د خپل پلار نیکۀ په تخت باندې مستحکم شوم نو پکار دي چې د عهدنامې د شرطونو مطابق فیرنګیان د افغانستان نه لاړ شي. مګر میکناټن ورته په جواب کښې ووئیل چې تر کومې پورې دوست محمد خان ازاد دے او تر کومه پورې چې د دې توقع کیدے شي چې دوست محمد خان به بیا په دې ملک باندې چپاؤ وکړي تر هغې پورې مونږ دا خیال نۀ شو کولے چې ستا حکومت مستحکم شوے دے. له دې کبله في الحال فیرنګیان د دې ملک نه نۀ شي وتے.

اوس د شاه شجاع دپاره بغیر د دې نه بله هیڅ لار نۀ وه چې خپل ځان د فیرنګیانو اسرې ته وسپاري دا هر څۀ هغۀ د خپله لاسه خپل قام او ملک سره کړي وو او د هغۀ په لاس کښې هیڅ زور او طاقت نۀ وۀ چې فیرنګیانو ئې خبره منلے وے مګر د فیرنګیانو د دې حاکمانه رویې او د هغوي د تکبر نه ډک سلوک په سبب او د ملک په هر یو اندروني معامله کښې د دخل ورکولو په وجه د هغۀ په زړۀ کښې د فیرنګیانو برخلاف ورځ په ورځ نفرت زیاتیدو او دا نفرت د قام په ټولو خلقو کښې ورو ورو خوریدو. ملیان هم اوس د معاملې په حقیقت باندې پوهه شول. او خلقو ته ئې ښکاره په وعظونو او تقریرونو کښې دا قسم ویناګانې کولے چې مونږ د شاه شجاع حکومت منلو ته خو تیار یو مګر د فیرنګیانو بادشاهي په هیڅ وجه په ځان باندې منلو ته تیار نۀ یو. په ملک کښې دا بې اطمیناني دې درجې ته ورسیدله چې څۀ لږه موده پس کرنل هیرنګ چې د قندهار نه خزانې سره راروان وۀ د غزني په خوا کښې د اولس د خلقو د لاسه قتل شو او د کونړ په علاقه کښې سید هاشم د بغاوت نشان وچت کړو فیرنګیانو سمدستي د هغۀ د سرکوبۍ دپاره په هغۀ باندې لام وتړلو او میجر میګریګر په طور د پولیټیکل ایجنټ فوځ سره روان شو. د شاه شجاع ټولو فوځونو د سید هاشم په قلعه باندې د پشت په مقام باندې حمله وکړه مګر کامیابي ونۀ شوه او د انګریزانو کافي فوځ مړ شو. اګر چې سید هاشم هم په خپله سره د اتیا زره روپو سرکاري وتښتیدو. د قلات غلزي قلا هم دغه شان د فیرنګیانو برخلاف راوچته شوه د دې واقعات دا

شان وو چې لفټیننټ لیچ د قلات غلزي د علاقې پولیټیکل ایجنټ د قلات غلزي په طرف فوځې ګشت کولو او د قلات غلزي خلقو ته ئ حکم وکړو چې د قلا دروازې پرانزئ. چې قلعه ملاحظه کړم. او د قلعې حاکم په هغه کسانو کښې وۀ چې د فیرنګیانو د ناجائز تسلط نه او په بادشاه باندې د هغوي د ناروا اثر نه سخت تنګ وۀ هغۀ په جواب کښې لفټیننټ لیچ ته ووئیل چې کۀ چرې تۀ ماته د شاه شجاع یا د هغۀ د زوي تیمور څۀ حکم ښودلے شے نو زۀ به دروازې پرانزم او کۀ نۀ وي نو ستا حکم منلو ته تیار نۀ یم. او کۀ نورې خبرې کوے نو سبا سحر به زۀ تا سره په حیثیت د یو دوست خبرې وکړم. لفټیننټ لیچ د حکومت او د طاقت په نشه کښې بدمست وۀ. هغۀ کله دا جواب اوریدے شو سمدستي ئ حکم وکړو چې په توپو قلا والوځوئ یو سخته ګوله باري په قلا باندې وشوه او د قلعې حاکم سره د ډیرو بې ګناه بې خطا سړو په دې ګوله بارۍ کښې قتل شو. او پاتې شونو خلقو چې اکثر غلجي وو د انګریزانو د زور په وجه د هغه وخت دپاره د لفټیننټ لیچ اطاعت قبول کړو مګر څۀ لږه موده پس چې هغوي ته موقع حاصله شوه نو هر څومره انګریزان چې د هغوي په لاس راغلل نو قتل ئ کړل. یوه بله فوځې دسته د انګریزانو هم دغه شان د میجر کلب بورن د لاندې په جنوبي افغانستان کښې قتل شوه. سردار اختر خان علیزے چې د زمینداور په علاقه هغۀ د خپلې قبیلې یو فوځ تیار کړے وۀ هغۀ هم انګریزان تر ډیرې مودې پورې خپلې علاقې ته پرې نښودل او اخر د ډیرو جنګونو نه پس د لفټیننټ ایلیټ اسسټنټ پولیټیکل ایجنټ په ذریعه هغۀ سره په څۀ خاص شرطونو راضي نامه وشوه.

هر کله چې د افغانستان په ملک کښې چارچاپیره د فیرنګیانو برخلاف دا بې اطمیناني او بې چیني ورځ په ورځ زیاتیدله نو دیخوا ته هغوي ته خبر وشو چې روسیان د خیوا په طرف فوځې پیش قدمي کوي. د دې په جواب کښې فیرنګیانو دا تجویز وکړو چې فوراً د بلخ په علاقه او د دریائے آمو په نمرخاتۀ غاړه باندې قبضه کول پکار دي چې د بخارا او خوارزم په علاقه باندې د انګریزانو سیاسي اثر دومره زیات شي چې هغوي ټول د روس مقابلې ته ودریږي. مسټر لارډ د افغانستان په قطبي قبله علاقې باندې پولیټیکل ایجنټ مقرر شوے وۀ. هغۀ خپل قیام ګاه په بامیان کښې وساتلو. او د هغه ځاے نه د ترکستان ټولو والیانو سره پولیټیکل خط و کتابت ئ شروع کړو. او د دې سره ئ نواب جبار خان ته پیغام ولیږلو چې د دوست محمد خان د کور خلق مونږ ته حواله کړه بل خوا ته میجر ټاډ یار محمد خان د شاه کامران وزیر سره د مدافعانه او جارحانه معاهدې په کولو کښې صرف په دې وجه ناکامیاب شو چې یار محمد خان یو ډیر زمانه شناس او تجربه کار سیاستدان وۀ. او د وزیر کبیر په نوم باندې مشهور وۀ . د هغۀ دا یقین وۀ چې کۀ یوځل مې انګریزان د هرات په علاقه کښې پښې لګولو ته پریښودل نو د حکومت ټولې واګې به لکه د افغانستان د باقي حصې په

شان زمونږ د لاسه وځي او كۀ چرې مونږ بيا د هغوي د خواهشاتو مخالفت وكړو نو د حاجي خان كاكړ پشان به زۀ هم بنديوان هندوستان ته واستولے شم. انګريزانو د هرات د قلا په استحكاماتو باندې د خپلو انجنيرانو په ذريعه قريباً شپږ ديرش لكه روپۍ لګولے وے له دې كبله ميجر ټاډ د خپل مشن په ناكامیابۍ ډير سخت برافروخته شو. او خپل حكومت ته ئې په هرات باندې د فوځ كشۍ دپاره وليكل.

ميكناټن او برنس او د دې طرف د افغانستان انګريزي پوليټيكل افسرانو هغۀ سره په دې كښې اتفاق وكړو مګر لارډ آكليند وائسرائے هند نۀ خو انګريزي فوځ ته د باميان نه د وړاندې كيدو اجازت وركړو او نۀ ئې په هرات باندې د پيشقدمۍ منظوري وركړه بلكې دا حكم ئې وكړو چې يو قابل اعتبار افسر دې د دې غرض دپاره خيوا طرف ته واستولے شي چې د روس د مجوزه پيش قدمۍ صحيح حالات او واقعات معلوم كړي. چنانچه سر وليم ميكناټن كرنل ارتهر كنولي خيوا طرف ته د دې غرض دپاره وليږلو ولې په دې اثنا كښې د روسيانو هغه فوځ چې د خيوا په طرف راروان وو د واؤرو په وجه لاره كښې تباه شو. سره د دې چې كنولي قوقند او خيوا ته په مشن وليږلے شو او خان خيوا سره د انګريزانو د طرف نه د دوستۍ عهدوپيمان وكړو.

دغه واقعات او حالات د افغانستان دننه روان وو چې دوست محمد خان د كوهستان په سرحد باندې راښكاره شو د ډيرې مودې نه د كوهستان خلق انګريزانو ته بدنيته شوي وو خو چونكې هغوي سره يوه وعده او اقرار هم د دوست محمد خان د تبنتيدلو نه پس نۀ شاه شجاع او نۀ فيرنګيانو پوره كړے وۀ په دې وجه هغوي ځائے په ځائے وقتاً فوقتاً د هغوي برخلاف به راپاڅيدل.

ميكناټن د كوهستانيانو د سركوبۍ دپاره ډيره زبردسته او سخته كارروائي شروع كړه او هر طرف ئې په خلقو باندې د خوف او هيبت اچولو دپاره اكثر هم هغه لوي لوي سرداران ګرفتار كړل چې چا د شاه شجاع او د انګريزانو د راتلو په وخت كښې د هغوي ډير خدمتونه كړي وو. چنانچه هر چا سره چې د فيرنګيانو د خپلو انعاماتو او اكراماتو وعدې پوره كړې نۀ وے او په دې وجه هغوي د خپلو ناراضګو اظهار په يوه موقع يا په بله موقع د هغوي نه كړے وۀ هغوي ئې ټول څۀ په شک او څۀ په واقعاتو باندې ګرفتار كړل او ځنې ئې هندوستان ته وليږل او ځنې ئې بنديوان كړل. په دې خلقو كښې حاجي دوست محمد خان چې ناظرينو ته به ياد وي چې د عبدالوهاب سابق مستوفي په ذريعه په ډير منت او خوشامندو شاه شجاع ځان له راوستے وۀ. هم يو تن وۀ. دغه شان نور لوے خلق صرف د شک په بنا باندې ګرفتار شوي وو.

د دې ټولو واقعاتو نه علاوه د ميكناټن او د فوځي افسرانو په منځكښې هم سخته

ناچاقي پيدا شوې وه. فوځي افسرانو به پټ پټ خطونه دميكناټن برخلاف د ګورنر جنرل پرائيويټ سكرټري مسټر كالون ته ليكل. او مسټر كالون به د هغه خفيه خطونو په بنا باندې دا شان تحريرونه راستول چې د هغې نه به د ميكناټن په پاليسي او طرز حكومت باندې مخالفانه نكته چيني معلوميده. ميكناټن د ګورنر جنرل د پرائيويټ سكرټري د دې چيټو په طرز تحرير باندې ډير دل برداشته شوے وۀ او د هغوي په ټول راز باندې پوهيدو اخر ئ هغهٔ ته په جواب كښې علاوه د دې فوځې افسرانو د شكايت نه د خپل زړۀ رنځ په دې الفاظو كښې ظاهر كړو.

"And now, my dear Colvin, you allow me to disburden my mind to you. I have perceived, or fancied I perceived, on several occasions lately, a want of confidence in my proceedings, and a disposition to listen to every unfavourable report regarding affairs in this quarter; whilst I do not receive that support which the overwhelming difficulties of my position entitle me."

ترجمه: "او اوس زما خوږه كالوڼه ما پريږده چې دا خپل ډك زړۀ درته تش كړم. ما د څهٔ مودې نه په څو څو موقعو دا ليدلي دي يا زما دا خيال دے چې ما ليدلي دي چې زما په كارروايي كښې اعتماد نۀ دے پاتې شوے. او زياتي ميلان دې خبرې ته دے چې په دې اطرافو كښې زما په هر كار برخلاف نكته چيني باندې غور كښيودے شي او اوس زما هغه مرسته نۀ كيږي چې د كومې زۀ د خپلو واقعاتو د بې انتها مشكلاتو په وجه مستحق يم."

د دې نه مخكښې هم په دې خط كښې ميكناټن بيا په هغې اختلافاتو او جګړو بحث كړے دے چې كومې د هغۀ او د بريګيډير جنرل رابرټس په منځكښې راپيدا شوے وے او د خپل خط خاتمه ئ په دې شان كړې ده:

"If no important operations should be contemplated for next year in this quarter, for the conduct of which it may be thought desirable that I should remain, some of the public money will be saved by the appointment of a less paid though equally qualified agent. I never yet served in an office where I had not the confidence of my superiors, and inclination to do so is by no means strengthened after a laborious public life of thirty one years."

ترجمه: "كۀ چرې مخكښې كال له په دې اطرافو كښې د څۀ بل داسې ضرورې كار كولو تجويز نۀ وي چې د هغې په سبب زما دلته پاتې كيدل مناسب وي نو كۀ زما په ځاے يو بل د كمې تنخواه ايجنټ چې په همه صفت موصوف وي مقرر شي نو يو كافي سركاري رقم به بچ شي ما له تراوسه پورې په يوه عهده باندې داسې ملازمت نۀ دے كړے چې په هغې كښې زما د بالا افسرانو په ما كښې اعتماد نۀ وي او د يو ديرش كالو د سخت سركاري ملازمت نه پس زما ميلان طبيعت دې طرف ته څۀ زيات شوے نۀ دے."

دا خط په څلورم د اګست په 1840ء كښې كالوڼ ته ليكلے شوے وۀ د دې خط نه يو

څو ورځې پس په دې مضمون هغهٔ خپل يو دوست ته دا شان خط ليکلے وهٔ:

"I am much obliged to you for the kind hint contained in your last. I should never for a moment think of resigning my post from any difference of opinion between myself and my superiors, as to the measures which should be adopted for the security of our interests in this quarter; but when a want of confidence is shown in myself is show personally, I would rather not wait till I get a less equivocal hint to move. Of late, I find that there has been kept up a system of espionage on my proceedings."

ترجمه: "تا چې په خپل ورروستني خط کښې مهرباني کړې ده او ماته دې دا اشاره راکړې ده زهٔ د هغې ډير مشکور يم زهٔ صرف په دې وجه چې زما او زما د بالا افسرانو په دې خبره اختلاف رائ ده چې مونږ له په دې ملک کښې د خپلو مفادو د حفاظت دپاره څهٔ طريقې اختيارول پکار دي د خپلې عهدې نه د استعفيٰ ورکولو خيال د يو لحظې دپاره هم په زړهٔ کښې نشم راوستلے مګر هر کله چې په ما کښې ذاتي طور د بې اعتمادۍ اظهار کيږي نو بيا زهٔ د هغه وخت انتظار نشم کولے چې ماته د دې نه په لږو مشکوکو الفاظو کښې د لرې کيدو اشاره راکړې شي. د څهٔ مودې نه ماته دا معلومه شوې ده چې زما په ټولې کارګزارۍ باندې د جاسوسۍ يو باقاعده سلسله جاري شوې ده."

دا اختلاف د دوئ په منځکښې دا وهٔ چې يو خوا ميکناټن لارډ آکلينډ ته دا ظاهرول چې د افغانستان اندروني حالت ډير ښهٔ دے. په ملک کښې چارچاپيره د افغانستان د ګزشته حالت په مقابله کښې ډير امن و امان دے د فيرنګيانو او د شاه شجاع رسوخ او اقتدار ورځ تر ورځ زياتيږي. د خلقو او د موجوده حکومت تعلقات ډير تسلي بخش دي او اګر کهٔ کله کله په يوه صوبه کښې لا په بله صوبه کښې څوک سرکش سردار د بغاوت او د فساد جنډه وچته کړي ولې هغه په لږ کوشش سره دفع شي. غرض دا چې ميکناټن لارډ آکلينډ ته د خپلې پاليسۍ د کاميابۍ خبرونه په خپلو رپورټونو کښې ورکول ولې د فوځ افسرانو بلکې برنس هم د ميکناټن د دې رائ نه برخلاف وهٔ. د هغوي دا رائ وه چې موجوده حکومت په افغانستان کښې د هيڅ قسم هردلعزيزي نهٔ لري. په ملک کښې د چين او ارام هيڅ آثار نشته ټول خلق چارچاپيره د فيرنګيانو سخت خلاف دي. او په دې وجه شاه شجاع هم د عام رعايا بدي شي. ځکه چې هغوي دا وائي چې دا هم شاه شجاع په مونږ باندې د غير قوم حکومت راوستے دے. د ميکناټن په دې برني خط کښې د هغهٔ او د فوځي افسرانو هم دې اختلاف رائ ته اشاره ده.

په يو بل خط کښې هغهٔ په برنس باندې هم په دې معامله کښې قريباً قريباً د بدنيتۍ الزام لګولے دے. ميکناټن په دې خط کښې علاوه د نورو معاملاتو نه د برنس متعلق ګورنر جنرل ته دا رنګ ليکلي دي:

"In a day or two it is my intention to send up officially with my comments, a paper handed to me by Sir A. Burns on the present state and future propects of this country. I hope to show that all things considerd, we are in as prosperous a condition as could have been expected. Sir A. of course wishes to prove the contrary----since by doing so, when he succeeds me , his failures would thus find excuse and his success additional credit. This is all natural enough. I have been exposed to a thousand interruptions whist writing this and beg pardon if I have used too much freedom."

ترجمه : "زما اراده ده چې په دې ورځ دوه کښې زۀ سرکاري طور سره د سر اليګزنډر برنس يو تحرير سره د خپلې رائ دروليږم چې کوم هغۀ ما ته د دې ملک په موجوده واقعاتو او آئنده حالاتو متعلق راکړے دے. زۀ اميد کوم چې زۀ به درته دا ثابته کړم چې د ټولو واقعاتو په مدنظر مونږ دا وخت هم دغه هومره ښۀ حالت کښې يو خومره چې کيدے شي. مګر سر اليګزنډر برنس دا غواړي چې واقعات د دې نه برخلاف ثابت کړي. ځکه چې د هغۀ غرض دا دے چې هر کله هغه زما نه پس مقرر شي او بالفرض ناکامياب شي نو چې هغۀ سره بهانه موجوده وي. او کۀ چرې هغه کامياب شي نو چې د هغې سهره هم د هغۀ په سر وي. دا بالکل قدرتي خبره ده په دې رنګ ليکلو کښې يو زر ځل زما خيال راغلو چې دا نۀ ليکم او زۀ د معافي خواستګار يم کۀ چرې ما ډيره ازادي کړے وي."

د دې خط نه معلوميږي چې سر اليګزنډر برنس د خپل لاس يو تحرير د خپل ځان نه د ذمه وارۍ د لرې کولو دپاره ميکناټن ته د دې غرض دپاره ورکړے وۀ چې هغه دې د هغۀ دا رائ د افغانستان د خراب حالت متعلق ګورنر جنرل ته وليږي. هم په دې ورځو کښې ګورنر جنرل د ميکناټن د خدماتو په صله کښې د هغۀ د بمبی د ګورنرۍ دپاره سفارش کړے وۀ او برنس له ئې د هغۀ عهده تجويز کړې وه.

دا اختلاف رائ د ميکناټن او د برنس او د فوځيانو په منځکښې د کال 1840-41ء په دوران کښې جاري وه ولې اوس مونږ بيا د کوهستان او د دوست محمد خان د هغې لورې نه په کابل باندې د راتلو قصه راخلو.

د حافظ جي نوم به هم ناظرينو ته ياد وي دا هغه سړے وۀ چې د غلام خان پوپلزي نه اتۀ زره روپۍ رشوت واخستو او کوهستانيان ئې د دوست محمد خان برخلاف راوچت کړل. او د کابل نه په دې بهانه د دوست محمد خان نه تښتيدلے وۀ چې زۀ به د کوهستانيانو شر او فساد چې غلام خان راوچت کړے دے دفع کړم. اوس چې د کوهستان شورش د فرنګيانو برخلاف شروع شو نو حافظ جي له هم خدائے پاک د غدارۍ سزا ورکړه. فرنګيانو هغه ګرفتار کړو او هندوستان ته ئې بنديوان واستولو او د هغه ځائے نه هغه حج له لاړو. د دې نه هم اګاهو ذکر شوے دے چې علاوه د حافظ جي نور هم ډير سرداران او

خوانین د کوهستان فیرنګیانو ګرفتار کړل او هندوستان ته ئ جلاوطن کړل. دې ګرفتارو اګر چې د څهٔ وخت دپاره په ټول ملک کښې یو هیبت پیدا کړو مګر د هر سپین روبي په زړهٔ کښې یوه بې چیني پیدا شوه. او هر یو په ځان ویریدو. عبدالرحمٰن خان، ګل محمد خان او سلطان محمد خان چې د هوتک او د توخي قبیلو سرداران وو هغوي څهٔ موده وړومبے هم د دې ویرې نه د سکهانو علاقې ته تښتیدلي وو مګر سکهانو دا درې واړه سرداران انګریزانو ته حواله کړل او انګریزانو هغوي هندوستان ته جلا وطن کړل. یو بل قبیح کار چې د انګریزانو د لاسه په دې ورځو کښې وشو هغه د اکرم خان نورزي قتل وهٔ. دې خان د انګریزانو د راتلو په وخت کښې د خپل ملک او د قام په خاطر د هغوي مقابله وکړه مګر څهٔ وخت چې هغه د انګریزانو په لاس ګرفتار شو نو د ټول بین الاقوامي قانون جنګ نه خلاف هغوي هغه په توپو کښې والوځولو. حاجي دوست محمد خان چې د قندهار بندي خانه کښې په دې ورځو کښې قید وهٔ هم په دغه ورځو کښې په جیلخانه کښې مړ شو او د خلقو دا شک وهٔ چې هغهٔ له زهر ورکړي شوي وو. (فیریر)

په دیرشم د اګست په دې حالاتو او واقعاتو کښې سردار محمد افضل خان د دوست محمد خان مشرے زوے د پنځو سوؤ سورو سره د انګریزانو په څوکۍ د باجګاه په مقام راپریوتو مګر انګریزي فوځ تیار وهٔ او افضل خان پسپا شو. دغه وخت خبر راغے چې دوست محمد خان د یو لوے لښکر سره د هیبک د غرونو په دې غاړه باندې د حملې په نیت راروان دے. فیرنګیانو ټولې لرې لرې څوکۍ خالي کړې او په بامیان کښې راجمع شو. دوست محمد خان چې بامیان ته رانزدې شو نو د فیرنګیانو د فوځ د پښتنو یوه کمپنۍ چې د هغې کمانډر صالح محمد خان وهٔ دوست محمد خان ته ورواوړیدو امیر خان چې د عبدالرشید ورور وهٔ هغه هم دوست محمد خان ته ور وتښتیدو.

په اووم ستمبر د انګریزي فوځ یوه دسته د کرنل ډیني د لاندې د کابل نه بامیان ته د امداد دپاره لاړه. او په څوارلسم ستمبر هغه ځاے ته ورسیده. په اتلسم ستمبر امیر صاحب د فیرنګیانو په یوه قلعه حمله وکړه مګر ناکامیاب شو او جنګ کښې ئ کافي نقصان بیاموندو.

په اتویشتم ستمبر والئ خلم مسټر لارډ پولیټیکل ایجنټ ته خپل سرې راواستول او فیرنګیانو سره ئ جوړه وکړه. دغه شان دوست محمد خان د ازبکو د امداد نه محروم شو. او د کوم سرې په ډاډ چې دوست محمد خان دومره لوے مهم په سر اخستے وهٔ هغه د هغهٔ د لاسه ووتو. دوست محمد خان په دې بالکل وار خطا نهٔ کړو او سمدستي د کوهستان طرف ته روان شو. ځکه چې هغه هم د کوهستان د خلقو د بې چینۍ نه خبر شوے وهٔ. هر کله چې انګریزان د دې نه خبر شو نو هیبت زده شول او فوراً ئ شهزاده تیمور او شاه شجاع سره د انګریزي فوځ د سر رابرټ سیل د کمان لاندې واستول. برنس او د هغهٔ میرمنشي موهن لعل

او کپتان اي کنولي په حيثيت د پوليټيکل ايجنټانو په کوهستان کښې خلقو ته د رشوتونو ورکولو دپاره وليږلے شول. سلطان محمد خان چې د دوست محمد خان د پرې يو ډير وفادار او اخلاص مند خان وۀ هغه دغه موده کښې په نجراؤ کښې شړونے وۀ. او چونکې د ډير اثر و رسوخ خاوند وۀ هغۀ د کوهستان د علاقې ټول خوانين او د اولس خلق د دوست محمد خان په حق کښې ودريدو ته تيار کړل. او يو لوے لښکر ئ جوړ کړو. دوست محمد خان د ډيرو تکليفونو نه پس درۀ غوربند ته سره د خپله لښکره په يولسم اکتوبر 1840ء راورسيدو. مګر په دې ځاے کښې سلطان هزاره سره د اوو سوؤ سړو د فيرنګيانو د رشوت په وجه هغوي ته واوړيدو.

دې خوا سيل هم کوهستان ته راورسيدو. هغۀ په نهۀ ويشتم ستمبر د علي خان د قلعې محاصره وکړه. او هغه ئ د يو سخت جنګ نه پس د قلعې نه شړلے وۀ او قلعه ئ ورانه کړې وه. دا قلعه په تورتم دره کښې وه او د فيرنګيانو د هغې په اخستلو کښې دومره نقصان وشو چې کپتان کنولي په دې جنګ کښې مړ شو.

غلام خان پوپلزي د کوهستان په دې وړو وړو جګړو کښې هم په ډيره تندهي سره د فيرنګيانو خدمت کړے وۀ چنانچه هغۀ ډير لوے لوے کوهستاني خانان لکه خواجه خان جي او خواجه عبدالخالق فيرنګيانو ته را واړول او مير مسجدي چې يو بل کوهستانے خان وۀ د هغۀ متعلق ئ دا ووئيل چې چونکې هغه د انګريزي کيمپ ته د راتلو نه ويريږي په دې وجه به هغه کابل ته لاړ شي. او د تيمور شاه مقبره کښې به پناه واخلي او بيا به شاه شجاع او ميکناټن ته ځان وسپاري. چنانچه د فيرنګيانو او د غلام خان په منځکښې د مير مسجدي خان متعلق دا فيصله وشوه او برنس هم دا تجويز منظور کړو. مګر د شپې د دې اقرار برخلاف انګريزانو د هغۀ په قلا جولګاه باندې حمله وکړه او مير مسجدي خان په قلعه کښې راګير شو هرڅومره کۀ غلام خان فيرنګيانو ته منت وکړو چې په دا شان کارونو باندې به د انګريزانو ټول اعتبار ورک شي مګر د هغۀ هيڅا هم ونۀ منله. او د قلعه محاصره په دريم اکتوبر په ډير زور او شور سره شروع شوه. مير مسجدي خان هم په ډيرې حوصلې او په بهادرۍ سره د انګريزي فوځ ډيره ښه مقابله وکړه او په هغه ورځ سره د دې چې يو ښۀ خونريز جنګ وشو فيرنګيانو هغه قلعه وانۀ خستے شوه. مير مسجدي خان په دې جنګ کښې زخمي شو او چونکې هغۀ کښې د دومره لوے باقاعده او منظم فوځ د مقابلې طاقت نۀ وۀ هغه شپه په شپه د قلعه په دروازه پټ د نجراؤ درې په طرف وتښتيدو.

فيرنګيانو د جولګاه قلعه ورانه کړه او د هغۀ دشمن خواجه بادشاه له ئ ورکړه. په دې شان د رابرټ سيل فوځونه د کوهستان په هر طرف خوارۀ شو. او د کوم کوم خان چې امير دوست محمد خان سره څۀ لږه هم همدردي وه. د هغوي قلعه ګانې ئ ورانې کړې. او د هغې

مالکان ئ د ملک نه وويستل.

ديـخـوا چې انګريزانو دا کارونه کول نو امير دوست محمد خان هم د خپل لښکر د راجـمـع کـولـو او د کوهستان د خانانو د امداد اخستلو دپاره شپه او ورځ په ځان يوه کړه. په دې کـار کښې د هغهٔ ملګرتيا د هغهٔ يوې خور په ډيرې بهادرۍ او زړورتيا وکړه. د دې بي بي پـه کـوششونو باندې د کوهستان ډير خانان د دوست محمد خان په جنبه کښې شامل شول. او ځـايـ په ځايـ ئ په انګريزي فوځونو باندې حملې وکړې. چنانچه د بابا قاشقار خان او مير درويـش خـان هـم د هـغې په ننواتې د فيرنګيانو برخلاف راوچت شول. دغه شان د کوهدرې خـان مـلـک سيف الـديـن خـان پـه انګريزي فوځ باندې پنځو سوؤ سورو سره يو سخته حمله وکړه مګر د باقاعده انګريزي فوځ په مقابله کښې دې حملو نه څهٔ خاص کاميابي ونهٔ شوه.

پـه دې اثنا کښې دوست محمد خان قريباً شپږ زره سړي د خپلې جنبې لاندې راټول کـړل او د نـجراؤ په لاره د کابل په طرف د حملې کولو په نيت راروان شول. د نجراؤ نه هغه پـه اتـويشتـم اکتوبر دورنامې ته راورسيدو او چې په لاره راتلو نو ځان سره به ئ د اولس نور خلق هم شاملول.

بـرنـس اومـوهن لعل صرف په دې کار مقرر شوي وو چې هغوي د رشوتونو په زور د دوست مـحـمـد خان نـه ټول خـلـق د فيرنګيانو طرف تـه را واړوي دې دواړو افسرانو پـه چـارچاپيـره عـلاقـه کښې او د دوست محمد خان په خپلو ملګرو کښې دومره روپۍ او زر وويشـل چې د دوسـت مـحـمـد خان امداد ته نور خلق رانغلل. هم دغه شپږو زرو سړو سره دوست محمد خان پروان درې ته راورسيدو. او په دويم نومبر 1840ء کښې انګريزي فوځ او هـغه يو بل سره مخامخ شول. انګريزي فوځ د کرنل سالټر د کمان لاندې سمدستي په هغهٔ حـمـلـه وکـړه او د چارچاپيره نه ئ راګير کړو. د دوست محمد خان د ملګرو وار خطا شو. ولې هـر کـلـه چې دوسـت مـحمد خان دا تماشه وليده نو توره ئ راوويسته او په خپله خپلو ملګرو سره په انګريزي فوځ لکه د چړق په شان راپريوتو. د هغهٔ ملګرو چې د دوست محمد خـان دا بهـادري ولـيـده نو هر يو ځان په ميدان کښې لکه د زمرو په دشمن باندې راواچولو. د لږ جنګ نه پس د انګريزي فوځ پښې وخوئيدې او وتښتيدل. انګريزي فوځ سخت شکست وخوړو او پښتنو تر لرې لرې پورې د هغوي تعاقب وکړو او بيشانه سړي ئ ترينه قتل کړل. د پـروان درې پـه دې جـنـګ کښې مسټر لارډ د انګريزانو مشهور پوليټيکل ايجنټ، لفټيننټ بـراډفـټ، ايـډجـوټـنـټ کـرسپين قتل شول. او ميجر بانسنبي او ميجر فريزر سخت زخميان شول.

دا وړومبـی جـګـړه وه چې په لويه پيمانه د دوست محمد خان او د فيرنګيانو ترمنځه وشوه او په هغې کښې دوست محمد خان ډيره ښه کاميابي حاصله کړه. چې د هغې په وجه د

تړولو فيرنګيانو په زړهٔ کښې د هغهٔ د طاقت او د بهادرۍ يو رعب کښيناستو مګر کوم کار چې فيرنګيانو د خپل فوځ په زور نشو حاصلولے هغه هغوي د روپو په زور د حاصلولو اراده وکړه. د پروان درې د شکست نه پس فيرنګيانو خپل بيشماره ايجنټان د دوست محمد خان په لښکر کښې راخوارهٔ کړل او د هغهٔ په سرو او افسرانو کښې ئې بيشماره روپۍ او د سرو زرو پاسې تقسيم کړې. افسوس دے چې په دې ورځو کښې د پښتنو اخلاق دومره کمزوري شوي وو چې هغوي په روپو او زرو باندې د خپل ملک او قوم ناموس خرڅول څهٔ عار نهٔ ګڼلو. دې خلقو دا رشوتونه واخستل او اراده ئې وکړه چې دوست محمد خان لاس پښې تړلے فيرنګيانو ته حواله کوو. دوست محمد خان چې په خپلو سترګو د فيرنګيانو دا کار وليدو نو سخت ويريدو او د خپل ځان د خلاصي په تکل کښې شو. اخر هغه د شپې بې خبره د خپل لښکره پټ شو او د يو څو وفاداره ملګرو سره ئې د غرونو لار واخسته.

اګر کهٔ دوست محمد خان وتښتيدو مګر محمد افضل خان د هغهٔ زوے به څهٔ پاتې شوو سرو سره بدستور په چارچاپيره غرونو باندې ګرځيدلو او د شهزاده تيمور او د جنرل سيل په فوځونو باندې به ئې ډزې کولے او چپاوونه به ئې پرې کول. د دې وړو وړو حملو هم په شهزاده تيمور او د فيرنګيانو په فوځي او پوليټيکل افسرانو دومره هيبت پيدا شو چې هغوي دا خيال وکړو چې ګنې محمد افضل خان سره ډير لوے لښکر دے او انګريز فوځ د هغې د مقابلې طاقت نهٔ لري. چنانچه برنس درې بجې د شپې يوه چيټۍ سر رابرټ سيل ته وليکله چې اګر چې مونږ د امير د حملې په بهادرۍ سره مقابله وکړه مګر دشمن په ډير لوے تعداد کښې هم مخامخ او هم په شا پروت دے په دې وجه مونږ له چاريکار ته واپس کيدل پکار دي. چنانچه سر رابرټ سيل د برنس د نصيحت مطابق خپل فوځونه د پروان درې نه واپس کړل او په چاريکار باندې ديره شو ولې هر کله چې د فيرنګيانو په فوځ کښې د محمد افضل خان او دوست محمد خان د حملې نه يو لوے خوف او هيبت پيدا شوے وهٔ نو ديځوا په دريم نومبر د مابښام په وخت کښې دوست محمد خان ځان ميکناټن ته حواله کړو. ميکناټن دغه وخت دوؤ افسرانو سره بهر په سورلۍ وتے وهٔ. او په پروان دره کښې د انګريزي فوځ د شکست متعلق ئې په خپلو کښې خبرې اترې کولے او په دې ئې بحث مباحثه کوله چې د امير دوست محمد خان د ارادو او د آئنده نقل و حرکت هيڅ پته نهٔ لګي چې بيا به په کوم طرف حمله کوي. چې په دې کښې يو سور په تراټ راغے او ميکناټن ته ئې ووئيل چې تهٔ لاټ صاحب ئې ميکناټن ورته ووې چې هو. سور ورته بيا ووئيل چې نو زهٔ دې خبروم چې امير صاحب راورسيدو ميکناټن تپوس وکړو چې کوم امير ؟ او کوم ځاے دے؟ سور ورته په جواب کښې ووې چې دوست محمد خان. يو منټ پس دوست محمد خان پخپله راغے او ميکناټن ته ئې ځان حواله کړو. ميکناټن هغه هم هغه ځاے ته بوتلو چې په کوم ځاے کښې

امیر صاحب یو کال وړومبے په شاهانه دربار کښې احکام صادر کړي وو. میکناټن هغه په ښهٔ قدر او عزت راوستو او هر کله چې دوست محمد خان هغهٔ ته خپله توره حواله کوله نو میکناټن هغهٔ ته خپله توره واپس کړه دوست محمد خان د میکناټن د ښهٔ سلوک نه خوشحاله شو او د هغهٔ شکریه ئ ادا کړه.

د دې نه پس دوست محمد خان کابل ته راوستے شو د هغه ځاے نه هغهٔ محمد افضل خان ته خط واليکلو چې ما ځان فيرنګيانو ته حواله کړو نو تاسوهم ځان حواله کړئ. چنانچه د محمد اکبر خان نه سيوا د هغهٔ ټولو زامنو ځان ميکناټن ته حواله کړو او فيرنګيانو هغوي ټول سره د بال بچ او د دوست محمد خان کلکتې ته په طور د شاهي نظربندانو واستول. او ګورنر جنرل دوه لکه روپۍ سالانه د هغوي د ګزارې دپاره مقرر کړې.

لوستونکو ته به ياد وي چې محمداکبر خان مونږ د خپل ورور سلطان جان سره په بخارا کښې پريښے وۀ ځهٔ وخت چې دوست محمد خان د بخارا نه راوتښتيدو نو امير نصر الله خان شاه بخارا هغوي دواړه ګرفتار کړل مګر ځهٔ وخت چې د دوست محمد خان د تيښتې ډيره موده تيره شوه نو ورو ورو نصرالله خان د هغوي نه زاړهٔ بندشونه لرې کړل. چنانچه هغوي هم چې موقع بيامونده نو د بخارا نه راوتښتيدل او شهر سبز ته ئ ځان راورسولو مګر د شهر سبز خان د شاه بخارا نه ويريدو نو له دې کبله هغهٔ اکبر خان سره دوه سوارهٔ کړل او خلم ته ئ ورسولو.

اګرچې د نظر بندۍ په حالت کښې لارډ آکلينډ په دوست محمد خان باندې ډيره سخته نګراني ساتله او د هغهٔ په نقل و حرکت باندې ئ ډيرې پابندې لګولے وے مګر په حيثيت مجموعي لارډ آکلينډ د دوست محمد خان ډير ښهٔ قدر او عزت وکړو. لارډ آکلينډ هغهٔ ته د انګريزي طاقت او زور ښودلو دپاره هغه د خپلو ميخزينونو، بندرګاهونو، اسلحه خانو باندې وګرځولو او د امير صاحب په زړهٔ باندې لکه چې څرنګ د ګورنر جنرل منشا وه د فيرنګيانو د کارخانو، تجارت ګاهونو، د هغوي د توپخانو، جهازونو دومره لوے رعب پريوتلو چې هغهٔ به هميشه خپلو زامنو ته دا وئيل چې ګورئ هيچرې فيرنګيانو سره جنګ ونهٔ کړئ ځکه چې هغوي له شکست ورکول ناممکن دي او يوه ورځ به وي چې هغوي به د ټولې دنيا مالکان شي. په کلکته کښې د يو څو مياشتو استوګنې نه پس د بنګال آب و هوا د هغهٔ صحت سره ناموافقه شوه او هغه بيمار شو چنانچه د ګورنر جنرل په اجازت سره هغه لدهيانې ته راغے او بيا د خپل صحت د ښهٔ کولو دپاره غرونو ته د وسيدو په غرض د حکومت په اجازت لاړو.

## باب

ځهٔ وخت چې امیر دوست محمد خان فیرنګیانو ته ځان حواله کړو او د افغانستان په اندروني امن و امان کښې د خلل اچولو دپاره هیڅ بهانه پاتې نهٔ شوه او د روس د پیشقدمۍ خبرې هم غلطې ثابتې شوې نو شاه شجاع دا خیال وکړو چې اوس د فیرنګیانو دپاره د هغهٔ په سلطنت کښې د نورې مودې دپاره د پاتې کیدو هیڅ عذر نشته. پس هغهٔ یو ځل بیا میکناټن ته دا درخواست وکړو چې د عهدنامې په رُو سره اوس تاسو له زما ملک پرېښودل پکار دي. مګر فیرنګیانو هم هغه شان هغهٔ ته دا بهانه پیش کړه چې ستا حکومت لا مضبوط شوے نهٔ دے او مونږ غواړو چې ستا په نظام سلطنت کښې داسې اصلاحات وکړو چې د هغې په سبب ستا د حکومت معامله په ښه طریقه او په اعلیٰ پیمانه باندې وچلیږي. پس شاه شجاع بیا لاچار خاموش کښیناستو او فیرنګیانو بدستور د ملک په اندروني معاملاتو کښې د شاه شجاع د مصلحت نه بغیر دست اندازي کوله.

د ټولو نه وړومبے اوس هغوي دا کوشش شروع کړو چې مونږ ته د هغې سردارانو او خانانو نومونه معلوم شي چې چا دوست محمد خان سره د هغهٔ د جلاوطنۍ په زمانه کښې راز باز او خط و کتابت بلاواسطه یا بلواسطه ساتلے دے. چنانچه هر چا چې به د دې متعلق د دوست محمد خان او د دې خوانینو په منځکښې ځهٔ قسم خط و کتابت میکناټن او د هغهٔ افسرانو ته پیش کولو نو د هغې په صله کښې به هغوي هغې خلقو ته انعامونه او اکرامونه ورکول او بیا به ئ د هغې سردارانو او خانانو نومونه ځان سره ولیکل او د هغوي د نقل وحرکت د نګرانۍ دپاره به ئ خاص انتظامات کول.

هر کله چې عامو خلقو ته دا خبره معلومه شوه چې فیرنګیان د دې قسم د خطونو په شوق سره په تلاش کښې دي نو بې اصوله خلقو د دې نه ناجائزه فائده اخستل شروع کړل. چې هر کس و ناکس به صرف د فیرنګیانو د روپو حاصلولو دپاره جعلي خطونه په داسې هنر سره جوړ کړل چې ډیر لږ فیرنګیان به د هغې په حقیقت باندې رسیدل. چنانچه د پروان د درې د جنګ نه پس یوه لویه تیلۍ د دې قسم خطونو نه ډکه اهل غرض خلقو فیرنګیانو ته پیش کړه او هغوي ته ئ دا ظاهره کړه چې د پروان درې په جنګ کښې دا د خطونو تیلۍ د هغهٔ نه پاتې شوې وه.

دا خطونه د سلطان محمد خان د نجراؤ او د سیف الدین خان د کوهدرې د طرف نه د امیر صاحب په نوم باندې لیکلي شوي وو او د کوهستان د ډیرو خوانینو او سردارانو مهرونه او دستخطونه پرې لګیدلي وو. په دې خطونو کښې دوست محمد خان ته د کابل په علاقه باندې د حملې کولو دعوت ورکړے شوے وهٔ او د هغې خلقو نومونه هم ورته پکښې لیکلي

شوي وو چې څوک د کابل په ښار کښې د هغهٔ په مرسته ودریدو ته تیار وو.

د دې خطونو علم څهٔ وخت چې د کابل لويو سردارانو او مشرانو ته وشو او هغوي ته دا معلومه شوه چې فيرنګيان په دې خطونو باندې څهٔ کارروائي کول غواړي نو هر يو د حيثيت سړے په ځان ويريدو او بيل بيل کس د خپل حفاظت دپاره د ځان نه خپل ملاتړ راچاپيره کړل. او د ګرفتارئ په صورت کښې ئې ځان مقابلې ته تيار کړو. د فيرنګيانو او د ملک د سردارانو په منځکښې دې بې اعتبارئ او بې اعتمادئ داسې د بې اطمينانئ فضا پيدا کړه چې هم فيرنګيان او هم د قام خلق د يو بل په زړهٔ کښې مخالف او دشمنان شول.

هر کله چې شاه شجاع د دې صورت حال نه خبردار شو نو هغهٔ هم د دې نه د فيرنګيانو برخلاف فائده وچتول وغوښتل. وخت په وخت به هغهٔ دا ټول سرداران ځان سره جمع کول او د فيرنګيانو ناجائز سلوک او د هغوي د دست درازو برخلاف به ئې هم دغه سرداران لمسول. چنانچه هغهٔ او ملا شکور د دې قسم سردارانو يوه مضبوطه پره ځان له جوړه کړه او دا کوشش ئې شروع کړو چې په څهٔ شان باندې د شاه شجاع دپاره د فيرنګيانو د لاس نه څهٔ نه څهٔ خودمختاري د ملک په اندروني معاملاتو کښې حاصله کړو.

فيرنګيان د ملا شکور او د شاه شجاع د دې کوششونو نه بې خبره نهٔ وو چنانچه هغوي بادشاه ته وليکل چې ملا شکور د خپلې عهدې نه فوراً برطرف کړه. اګر چې شاه شجاع د دې ډير سخت مخالفت وکړو خو د هغهٔ په حقيقت کښې هيڅ اقتدار اوواک نهٔ وهٔ. په دې سبب هغهٔ مجبوراً د فيرنګيانو په دې خبره عمل وکړو او د هغوي په وينا ئې محمد عثمان خان نظام الدوله مقرر کړو. نظام الدوله چونکې د فيرنګيانو د لاسه مقرر شوے وهٔ په دې وجه هغهٔ د شاه شجاع د مرضئ هيڅ پروا نهٔ کوله او په خپلو ټولو کارونو کښې به صرف د ميکناټن او د برنس په هداياتو باندې چليدو. په دې باندې د شاه شجاع برائ نام څهٔ رعب او اثر چې په خلقو کښې پاتې وهٔ هغه هم بالکل ورک شو او خلقو ښکاره په ښکاره هغهٔ پورې ټوقې او خندا شروع کړه.

هر ماښام به محمد عثمان خان نظام الدوله د خپلې روزانه کارګزارئ اطلاع ميکناټن او برنس ته ورکوله او د شاه شجاع په ځاے به هغهٔ احکام د ميکناټن نه اخستل. دا محمد عثمان د هغې وفادار خان زوے وهٔ چې چا په شاه زمان باندې د دوست محمد خان پلار پائنده خان قتل کړے وهٔ. او بيا څهٔ وخت چې فتح خان او شاه محمود کابل واخستو نو وفادار خان نه هم هغوي بدل واخستو او هغه ئې قتل کړو.

محمد عثمان اوس د فيرنګيانو د سيوري لاندې د هغې خلقو نه بدل اخستل غوښتل چې چا د هغهٔ د پلار په مرګ کښې حصه اخستے وه. مرزا امام وردي چې يو ډير فريبي او مکار سړے وهٔ هغه د هغهٔ نائب سکتر وهٔ. د هغهٔ نور مشيران عبدالرزاق ځان مستوفي او سيد

حسین دفتري وو. دې خلقو په جمع دا قسم زیاتی په قام باندې شروع کړې چې په لږه موده کښې ئې ډیر مال جمع کړو. محمد عثمان خان چونکې د فیرنګیانو په زور او ملګرتیا باندې غاوره وۀ پـه دې وجه هغۀ د عام رعایا د خوشحالی یا د بدحالی هیڅ پروا نۀ لرله. او هر څۀ به چې هغۀ تـه بـرنـس یـا میکـنـاټـن وئیـل هغه به ئې کول. هغۀ ته نۀ د بادشاه د خوشحالی څۀ ضرورت وۀ او نۀ د قوم د سردارانو. د هغۀ غرض صرف دا وۀ چې ما نه دې فیرنګیان چې د چا پـه لاس کښې اصـلـي فـوځـي زور او طاقت وۀ خوشحاله وي. نتیجه دا شوه چې په لږه موده کښې کۀ څۀ اختیارات د بادشاه په لاس کښې پاتې هم وو هغه ترې لاړل.

یو ځل نظام الدوله د یو سید نه د هغۀ زمکه واخستله او خپل یو نوکر ته ئې وبخښله دا سید د شاه شجاع پیر وۀ چنانچه هغۀ شاه شجاع ته شکایت وکړو. بادشاه نظام الدوله ته حکم وکـړو چـې دا زمـکـه دې سیـد ته واپس کړه مګر وزیر د دې حکم د تعمیل نه انکار وکړو او هـر کـلـه چې د پرله پسې حکمونو باوجود سید موصوف ته خپله زمکه واپس نۀ کړې شوه نو هغۀ بیا بادشاه ته عرض وکړو چې وزیر خو ستا حکم منلو ته تیار نۀ دے چنانچه بادشاه هغۀ ته پـه صـافـو الفاظو کښې ووئیل چې رښتیا خبره خو دا ده چې په محمد عثمان خان نظام الدوله وزیـر زمـا هیـڅ لاس نـۀ رسي او په دې سبب تۀ ما نور مۀ تنګوه ځکه چې زۀ بادشاه نۀ یم غلام یم. (موهن لعل جلد دویم صفحه ۳۶۸)

دیـخـوا ته نظام الدوله د سرالیګزنډر برنس او د میکناټن خبر نویسانو ته چې د یو نوم میـر حسـن او د بـل نـوم شـاه جـي وۀ غـټـې غټې تنخواګانې په طور د رشوتونو مقرر کړې. د هـغـوي کار دا وۀ چې په خپلو رپورټونو کښې هغوي د نظام الدوله د طرز حکومت او د حسن انتـظـام دې انـګـریـزي افسرانو ته تعریفونه ولیکي. دغه شان میکناټن او برنس دواړه د اصلي واقعاتو نه تر ډیرې مودې پورې بې خبره پاتې شول.

هـم پـه دې زمـانـه کښـې د ایسټ انـډیـا کـمـپـنـی مشران د افغانستان د روز افزون اخـراجـاتو پـه وجه میکناټن ته ډیر ضروري احکام راواستول چې فوځي او انتظامي اخراجات دې پـه هـره وجـه چـې وي کم کړې شي. چنانچه د ټولو نه ؤړومبے فیرنګیانو دا فیصله وکړه چـې د بـادشـاه پـه فـوځ کښې دې کمے راوستے شي. پس په دې سلسله کښې برنس احکام صـادر کـړل چـې څـومره څومره سرې هر یو سردار سره د فوځي خدماتو د ادا کولو دپاره یو کـال وړومبے مـنـظـور شوي وو هغوي دې ټول بیا د کپتان ټریور په مخکښې د معائنې دپاره پیش شـي. او د هـغـۀ چې څومره سرې خوښ وي هغه به وساتي او نور به ټول موقوف کړي. دې قسـم سپـاهـیـانـو تـه به آئنده دپاره حاضر باشي وئیلے شي. او د دوئ استوګنه به په خیمو کښې وي او هر وخت به په قومي مهم د روانیدو دپاره تیار ناست وي.

پښتنـو او ایـرانـي سردارانو په دې حکم د سختې ناراضګی اظهار وکړو او وې وئیل

چې وروميے خو دې زمونږ د ملاترو په شمار کښې هيڅ کمے نۀ شي کيدے او کۀ چرې فيرنګيان خامخا زمونږ سرې کمول غواړي نو د کپتان ټريور د ملاحظې دپاره به مونږ هم هغه هومره سرې پيش کوؤ چې څومره فيرنګيان مونږ سره ساتل غواړي. ځکه چې کۀ چرې زمونږ ملاتړ د دې خبرې نه خبر شي چې زمونږ د سردارانو فوځي طاقت د کپتان ټريور په لاس کښې دے نو سرداران به په دې د خپلو سرو په نظر کښې سپک شي.

فيرنګيانو د سردارانو دا متفقه تجويز هم نامنظور کړو. چنانچه هر يو سردار په دې مجبور شو چې خپل ټول ملاتړ دې د کپتان ټريور په مخکښې پيش کړي. پس کپتان ټريور چې څوک غوښتل نو هغه ئ وساتل او چې څوک ئ نۀ غوښتل هغه ئ موقوف کړل. په سردارانو باندې دا خبره ډيره ترخه ولګيده او د دې بدسلوکۍ په سبب د هغوي په زړۀ کښې ډير خفګان پيدا شو. د دې نتيجه دا شوه چې هر يو حاضر باش خپل ځان د خپل سردار نه خودمختار وګڼلو او د بادشاه د فوځ ضابطه بالکل تباه شوه.

د دې فوځي اصلاحاتو نه لږه موده پس شاه شجاع منصور خان چاوس باشي قندهار ته د محمد تقي خان ګورنر د نظام حکومت د معائنې دپاره وليږلو ځکه چې د قندهار د دې ګورنر برخلاف بادشاه ته د دې بد انتظامۍ شکايتونه رارسيدلي وو. هرکله چې منصور خان قندهار ته ورسيدو نو هغۀ ټول دراني سرداران په خپل ځاے کښې راجمع کړل او ورته ئ ووئيل چې ما د بادشاه نه ستاسو دپاره يو پيغام راوړے دے او هغه دا دے چې تاسو ټول د فيرنګيانو برخلاف را يو ځاے شئ او د بادشاه لاسونه د فيرنګيانو برخلاف مضبوط کړئ. ځکه چې فيرنګيانو د قوم د کمزورۍ او د بې وسۍ په وجه ټول اختيارات د بادشاه نه اخستي دي او هيڅ کار د هغۀ د منشا مطابق نۀ کيږي.

محمد تقي خان د فيرنګيانو يو نوکر سړے وۀ هغۀ سمدستي ميجر رالنسن پوليټيکل ايجنټ مقيم قندهار ته د منصور خان د دې ټولې واقعې اطلاع ورکړه. او هغۀ ته ئ ووئيل چې تۀ خپل يو اعتباري سړے د دې کار دپاره مقرر کړه چې هغۀ پټ په پرده کښې يو خوا ته کښيني او هغه دې پخپله د منصور خان هغه ټولې خبرې واؤري چې کومې هغه د قندهار سردارانو ته د بادشاه د طرف نه راوړي دي. چنانچه ټول سرداران محمد تقي خان بيا راجمع کړل او چاوس باشي منصور خان بيا هغوي ته د بادشاه پيغام واورولو. د ميجر رالنسن مخبرانو هغه ټولې خبرې په خپلو غوږونو واؤريدے او سمدستي ئ کابل ته ميکناټن او برنس ته د دې ټولې واقعې اطلاع ورکړه.

فيرنګيانو سمدستي د شاه شجاع نه جواب وغوښتلو ولې بادشاه د چاوس باشي د دې ټولو خبرو نه انکار وکړو او د دې ټولې معاملې ذمه واري ئ د منصور خان په سر وغورځوله. منصور خان د بادشاه په حکم واپس کابل ته راغے او د انګريزانو په وينا شاه شجاع د هغۀ مخ

تور کړو په خرۍ سور کړو او په ټول ښار کښې ئ دغه شان وګرځولو. منصور خان به د خر د شا نه هم دغه شان اواز کولو چې هر څوک د شاه شجاع الملک خدمت کوي نو د هغهٔ به هم دغسې سزا وي.

د دې خبرې نه علاوه فیرنګیانو د اخراجاتو د کمولو په خاطر د غلجو، درانو سردارانو او ملیانو د ماجبونو نه بلا وجه دوه لکه روپۍ کمې کړې. او څهٔ وخت چې هغوي د دې برخلاف د ناراضګۍ اظهار وکړو نو هغوي سره فیرنګیانو او نظام الدوله ډېر خراب او سخت سلوک وکړو. کوم پښتانهٔ چې شهزاده تیمور په پېښور کښې د سرکلاډویلۍ په ذمه وارۍ باندې د فوځي خدماتو دپاره نوکران کړي وو هغوي ټول فیرنګیانو د اخراجاتو د کمولو په خاطر د ملازمت نه لرې کړل په دې باندې هم په هغې ټولو سردارانو کښې سخته بې چینې پیدا شوه. کوم کوم خلق چې د دوست محمد خان برخلاف د شاه شجاع سره د جنګ په ابتدا کښې ملګري شوي وو. څهٔ وخت چې نظام الدوله په کابل او د هغې نه چارچاپیره علاقه کښې د موجوده حکومت برخلاف سخته بې چیني ولیده نو هغهٔ فیرنګیانو ته ووئیل چې په کار دي چې د دې ټولو سردارانو نه یو تحریري اقرار نامه واخستې شي چې مونږ به د بادشاه د همیش دپاره نمک حلال او وفادار رعایا یُو او هیڅرې به هم د موجوده نظام حکومت برخلاف د څهٔ قسم سازش نهٔ کوو. هر کله چې سردارانو ته دا ووئیلے شو نو هغوي په جواب کښې ووئیل چې مونږ د بادشاه نوکران یُو او بادشاه له دا پکار نهٔ دي چې هغه په خپل رعایا باندې بدګماني وکړي او د هغوي نه تحریري دستاویزات واخلي. په دې باندې فیرنګیانو شاه شجاع ته ووئیل چې کوم سردار چې په دې کاغذ باندې دستخط کولو نه څنګ و څټ کیږي هغه خپل دربار ته مهٔ پرېږده او ورته ووایه چې د افغانستان نه دې وځي. شاه شجاع دې یو تجویز سره هم اتفاق نهٔ کولو او نهٔ سرداران د هغهٔ د ذات برخلاف وو او نهٔ د هغهٔ د بادشاهۍ. لیکن فیرنګیانو دا په افغانستان کښې د خپلو پنجو ښخولو دپاره او د خپلې فائدې په خاطر په بادشاه باندې دا ټول کارونه کول غوښتل. سرداران هم په دې پوهه وو مګر د فیرنګیانو زور ډېر زیات وهٔ او د هغوي اوس هیڅ وس نهٔ رسیدو د دې دپاره هغوي د لاچارۍ نه په هغه کاغذ باندې دستخطونه وکړل.

اخر کار هر کله چې د سردارانو د صبر کاسه ډکه شوه او فیرنګیانو او د هغوي ماتحت افسرانو هغوي سره د ټول محکوم قومونو په شان قسماقسم سختۍ او بې عزتۍ راواخستې او هغوي ئ د ټول قومي اثر او اختیاراتو نه محروم کړل نو د ستمبر 1841ء په اخر کښې هغوي یو ورځې ټول په بالاحصار کښې د بادشاه په خدمت کښې حاضر شول او په ډېرې عاجزۍ سره ئ د خپلې بیوسۍ او بې واکۍ قصه هغهٔ ته بیان کړه او ورته ئ ووې چې مونږ ته لار وښیه چې مونږ له په داسې وخت کښې څهٔ کول پکار دي؟

بادشاه ورته په جواب کښي ووئیل چې زۀ خو برائ نام بادشاه یم او ما دپاره دا ناممکن ده چې زۀ ستاسو د فریادونو څۀ دادرسي وکړې شم. او په اخر کښې ئ ورته ووئیل چې دا ستاسو خپله ګناه ده چې زۀ دا رنګه ذلیل شوے یم زۀ تاسو د فیرنګیانو خوښې ته پریښودے یم که تاسو کښې یو سړے هم نر وے نو زۀ به هغۀ د دې شرم او د غلامۍ د ژوندون نه خلاص کړے وم او د درانو د حکومت عزت او نوم به ئ برقرار ساتلے وۀ او ورته ئ دا هم ووې چې " ازروئ شما ہیچ نمی شود که نام قوم کنید ".

د دې الفاظو اثر په سردارانو داسې زر وشو چې عبدالله خان اچکزے سمدستي راوړاندې شو او ورته ئ ووئیل چې زۀ هغه نر سړے یم چې تا به د دې شرم او غلامۍ د ژوند نه خلاص کړم.

هم په دغه ورځو کښې عبدالله خان اچکزے بیا د ماسپښین نه پس بادشاه له پټ د محل په باغ کښې ملاقات له راغے او هغۀ سره ئ د فیرنګیانو خلاف په یو مناسب موقع باندې د بغاوت کولو سازش وکړو. عبدالله خان چې څۀ وخت د بادشاه نه واپس راغے نو په خپل خاے کښې ئ ټول لوي لوي سرداران د کابل چې په هغوي کښې محمد عطا خان، سکندر خان، میر افضل خان، عبدالصمد خانۍ او عبدالسلام خان پوپلزے، سیدال خان علي کوزے، امین الله خان لوګړے، محمد حسین خان عرض بیګي او نور ډیر کسان شامل وو رایوځاے کړل او د شاه شجاع د ارادې نه ئ خبردار کړل. هم په دې جرګه کښې هغوي ټولو د قرآن شریف په پاڼو باندې خپل مهرونه ولګول او قسم ئ وخوړو چې د فیرنګیانو حکومت به د افغانستان نه لرې کوؤ. او د هغوي برخلاف به هر یو د ازادۍ نشان وچتوؤ سره د قسمه په دې کسانو کښې یو بل سړے چې د هغۀ نوم بچه پهلوان وۀ هغه د دې ټوله مخبري موهن لعل ته چې د برنس پولیټیکل سکترو وۀ، ورکړه.

چنانچه موهن لعل سمدستي د دې نه برنس خبر کړو مګر برنس او میکناټن دواړه د خپل طاقت او قوت په نشه کښې داسې مست وو چې هغوي د هغې قرآن شریف د نیولو یا د دې سازش د جوړونکو د نومونو معلومولو هم هیڅ کوشش ونۀ کړو هغوي دا خیال وکړو چې کۀ چرې مونږ دې واقعې له څۀ غیر معمولي اهمیت ورکړو نو پښتانۀ به وائي چې فیرنګیان ویریدل.

" It is your own fault that I have fallen thus low; you have abandoned me to the good pleasure of the English; had there been one man of Spirit amongst you, he would soon have delivered me from this shameful state of dependence. (Ferrier P-348)

دغه شان برنس په خپله یوه چیټۍ کښې د شاه شجاع د خپل خفګان متعلق میکناټن ته په داسې شان لیکي :

" I was again called by the King in the aftrenoon. I see a deeprooted jealousy against the Wazir ( Minister). Though he ought and must be supported I still think the King should be made more conversant with the passing affairs then he is.

The King gave me at greater length his feelings and his sufferings. He said he had not at trustworthy man in his country, that all were engaged in setting against us and us against him- That his enemies were allowed to continue in power- That the portion of his revenue set aside for him was not collected and paid- that his adherents were discontented- that he was kept under by us in all things yet that they had not gone right; - that a pilgrimage to Makka wah his only alternative, and that at Ludhyana he had, had much power as compared with this part of his reign.

More fighting still, when will this country be pacified? "

(Mohan Lal's Life of Dost Mohammad Khan Vol-2 P-387-388)

ترجمه: زهٔ نن د غرمي نه پس بيا بادشاه راوبللم ماته د هغهٔ په زړهٔ کښې د وزير برخلاف سخت د حسد جذبات ښکاره شو. اګرچې مونږ له د هغهٔ مرسته پکار ده ولې زما اوس هم دا خيال دے چې مونږ له بادشاه د چارچاپيره واقعاتو نه زياتي خبرول پکار دي.

بادشاه خپل احساسات او تکليفونه ماته په ډير تفصيل سره بيان کړل هغهٔ ووئيل چې زما په ملک کښې يو اعتباري سړے هم نشته هر يو سړے په دې کوشش کښې لګيا دے چې ما ستاسو برخلاف کړي او تاسو زما. او دا چې هم هغه شان زما د دشمنانو په لاس کښې اختيارات شته او کومه ماليه چې زما د اخراجاتو دپاره جدا شوې ده هغه هيڅوک نهٔ ټولوي او نهٔ ئې ماله څوک راکوي او دا چې زما ټول ملګري خفه دي او په هره معامله کښې تاسو ما لاندې ساتئ. سره د دې يو کار هم سم نهٔ دے او اوس بغير د مکې د حج نه زما بله لار نشته. او په لدهيانه کښې زما اختيارات د نن ورځې د بادشاهی په مقابله کښې زيات وو معلوميږي چې نور جنګونه هم کيدونکي دي. خبر نهٔ يم چې کله به په دې ملک کښې امن قائميږي.

(سوانح عمري دوست محمد خان مصنفه موهن لعل صفحه ۳۸۸ ـ ۳۸۷)

سره د دې چې د انګريزي حکومت برخلاف بې چيني ورځ په ورځ زياتيدله او د قام مشران د ناراضګی او د خفګان نه ډک وو مګر برنس او ميکناټن په خپله پاليسی کښې د ويښتهٔ هومره فرق هم را نهٔ وستو او د لارډ آکلينډ د هداياتو مطابق ئې د بادشاه څهٔ فوځ خو کم کړو او باقي له ئې تنخواګانې ډيرې کمې کړې. د دې نه علاوه په اکتوبر 1841ء کښې هغوي د شرقي غلجو د ماجبونو نه شلويښت زره روپۍ کمې کړې دا هغه غلجي وو چې د کابل او د جلال اباد په منځکښې په ټولو درو باندې قابضان وو. او د فيرنګيانو د لويو ماجبونو په وجه به هغوي د هندوستان او د کابل په منځکښې د آمدورفت لاره صفا او محفوظه ساتله. څهٔ وخت چې هغوي ته د خپلو ماجبونو د کمي خبر وشو نو هغوي وړومبے خو ميکناټن ته خپل ژړا او فرياد وکړو او چونکې هغهٔ د دې انتظام بوج په خپل سر نهٔ

اخستلو هغهٔ غلجي بادشاه ته د داد رسۍ دپاره واستول مګر د بادشاه څهٔ اختيارات وو غلجيان مايوسه خپلو خپلو علاقو ته لاړل. او سمدستي ئ د درهٔ تزين په خوا کښې يوه قافله لوټ کړه او د خورد کابل په تنګه دره کښې په مضبوطو مضبوطو مقاماتو باندې خپل سرې سره د ټوپکو د لارې د بندولو دپاره کېښنول. هم په دې ورځو کښې محمد اکبر خان د دوست محمد خان دويم زوی د خلم نه باميان ته راغے او د افغانستان بددله سردارانو سره ئ د راز باز خبرې اترې شروع کړې.

په يولسم اکتوبر جنرل رابرټ سيل سره د يو بريګيډ د خورد کابل د درې د صفا کولو دپاره د کابل نه واستولے شو جنرل سيل د خپل فوځ سره د بتخاک په مقام باندې خپل کيمپ ولګولو اوبل سحر له وختي په دره کښې ورننوتلو دا دره ډيره تنګه او دواړه طرف ته ئ وچت وچت کمرونه قريباً پنځهٔ پنځهٔ سوه شپږ شپږ سوه فټه وچت واقع دي. په دې کمرو باندې غلجو يو سنګر هم جوړ کړے وهٔ. غلجو د جنرل سيل په فوځ باندې يوه زبردسته ګوله بارې د خپلو جزائلو نه وکړه. او جنرل سيل پخپله هم په پښه باندې زخمي شو. ولې غلجي په شمار کښې لږ وو. په دې وجه د يوې سختې مقابلې نه پس هغوي د قبر جبار په طرف پسپا شول. او د خورد کابل دره د څهٔ وخت دپاره صفا شوه. دا فوځ د څهٔ وخت دپاره د خورد کابل او د بتخاک په مقام باندې ډيره وهٔ مګر غلجو به د شپې په هغوي باندې شبخونونه کول او د فيرنګيانو د فوځ نه به ئ ډير نقصانونه کول.

په دويشتم اکتوبر دا ټول فوځ کپتان ميګريګر پوليټيکل ايجنټ سره د تزين په طرف د غلجو د سرکوبۍ دپاره بيا روان شو. حمزه خان د غلجو د علاقې ګورنر وهٔ او د بادشاه د طرف نه مقرر شوے وهٔ فيرنګيانو هغه په دې الزام ګرفتار کړو چې هغه هم خپل قام سره د فيرنګيانو برخلاف رازدار دے.

جنرل سيل په تزين کښې تر شپږويشتم اکتوبر پاتې شو. د هغې نه پس هغه د ګندمک په طرف روان شو ځکه چې کپتان ميګريګر غلجو سره په دې شرط راضي نامه وکړه چې د غلجو په ماجبونو او تنخواګانو کښې به هيڅ کمے نهٔ راځي مګر چونکې فيرنګيانو خپل ټول سابقه اقرارونه په مناسب طريقه نهٔ وو پوره کړي نو د غلجو د کپتان ميګريګر په قول او اقرار باندې پوره باور ونهٔ شو او ځاے په ځاے ئ په انګريزي فوځ باندې خپلې حملې بدستور جاري وساتلے.

موهن لعل په خپل کتاب کښې په صفحه 207باندې په دې مضمون دا شان ليکي :

" Whatever we might boast of our diplomatic successes during the compaign of Afghanistan, we were certainly very wrong in not keeping up our adherence, even for a short time, to those engagements and promises which we had so solemnly and faithfully made to various cheifs in return for their taking up

our cause and abandoning their long known and established masters. Our letters pledging our honour govt to reward and appreciate their services for our goods were in their hands; and as soon as we found that the chief of Qandahar were fled, and that there was no necessity for wearing longer the array garb of political civilities and promises, we commenced to fail in fulfilling them. There are, in fact, such numerous instances of our violating our engagements and deceiving the people in our political proceedings, within what I am acquainted with, it would be hard to assemble them in one series."

ترجمه : "د افغانستان په دې جنګ کښې هر څومره چې مونږ په خپلو سیاسي کامیابو باندې فخر وکړو نو ښائیږي ولې دې کښې هم شک نشته چې مونږه دا ډیره لویه غلطي کړې ده چې د لږ ساعت دپاره هم مونږ په هغه وعدو او اقرارونو باندې ټینګ پاتې نۀ شو کوم چې مونږ مختلفو سردارانو سره د هغوي د خدماتو په صله کښې کړې وې چې هغوي زمونږ ملګرتیا کړې وه. او خپل زاړۀ او مستحکم مالکان ئې پریښودلي وو زمونږ هغه ټولې چیټې په کوم کښې چې مونږ د خپل عزت او حکومت په ضمانت دا لوظ کړې دے چې مونږ به هغوي له د نیکۍ کولو په عوض کښې انعام او اکرام ورکوؤ د هغوي په لاس کښې وې مګر څۀ وخت چې مونږ ولیدل چې د قندهار والیان د ملک نه وتښتیدل او د سیاسي وعدو او نمائشي اخلاقو جامه اوس په ځان اچول غیر ضروري دي نو مونږ د هغې ټولو وعدو خلاف ورزي شروع کړه. حقیقت دا دے چې تر کومه پورې ماته علم دے نو زمونږ په سیاسي عمل کښې زمونږ د دې قسم اقرارونو د ماتولو او خلقو له د دهوکې ورکولو مثالونه دومره ډیر دي چې په یوه سلسله کښې د هغې راجمع کول هم مشکل دي."

هم په دې مضمون سر جان کے په خپل کتاب جلد اول صفحه 452باندې دا شان لیکي :

"It was plain, too, that the Ghelzai of western Afghanistan- the original lords of the land- were disinclined to hand their neck to the Sadozai yoke. They had rejected the overtures made to them. They were not to be bought by British gold or deluded by British promises. Perhaps they may have doubted the sincerity of the latter. Already were Shah Shuja and Macnaughten scattering about those promises even more freely then their money; and already were they ceasing to respect the obligations of fulfilling them. The Ghelzai now regarded us with unconquerable mistrust. "

ترجمه : "دا ښکاره خبره ده چې د مغربي افغانستان غلجو چې د ملک اصلي مالکان وو د سدوزو جغ ته خپل څټونه ټیټول نۀ غوښتل هغوي د دې قسم تجویزونه رد کړي وو نۀ خو هغوي چا په انګریزي زرو باندې راړولے شو او نۀ انګریزي وعدو باندې هغوي غولیدے شو. شاید چې هغوي په دې اقرارونو باندې هډو اعتبار نۀ کولو ځکه چې وړومبے د دې نه شاه

شجاع او میکناټن دا اقرارونه بې خرته هر چا سره کړي وو لکه چې څرنګه ئ روپۍ خوړې کړې وې او بیا ئ دا اقرارونه مات کړي هم وو له دې کبله اوس غلجي په مونږ سخت بې اعتباره شوي وو."

څۀ وخت چې جنرل سیل ګندمک طرف ته روان شو نو د انګریزي فوځ یوه حصه واپس کابل ته رارروانه شوه او د قبر جبار په مقام باندې ئ کیمپ ولګولو. په اول نومبر باندې دا فوځي دسته د خورد کابل په طرف رارروانه شوه. په دویم نومبر جنرل الفنسټن چې د تمام انګریزي فوځونو په افغانستان کښې کمانډر انچیف وۀ حکم ورکړو چې دا فوځ دې فوراً کابل ته واپس راشي. څۀ وخت چې دا فوځ د میجر ګرفتهـ د کمان لاندې کابل ته روان شو نو غلجو بیا په ډېرې بهادرۍ سره په هغوي باندې ځاے په ځاے حملې وکړې او د انګریزي فوځ نه ئ ډېر سپاهیان قتل کړل.

وړومبے د دې نه چې مونږ په کابل کښې د دویم نومبر کال 1841ء واقعات په تفصیل سره بیانول شروع کړو نو دا به ښه وي چې مونږ د فیرنګیانو برخلاف د دې عظیم الشان بغاوت په یوه لویه وجه باندې هم بحث وکړو.

کوم فیرنګیان افسران چې د کابل په ښار کښې دننه حاکمان وو هغوي یا سردارانو سره د ملاقات کولو په وخت کښې او د خبرو اترو کولو په دوران کښې دا شان بې عزتۍ او بدسلوکۍ کولے چې د یو خوددار انسان د برداشت کولو قابلې نۀ وے د فیرنګیانو د ملاقات طریقه په کابل کښې سردارانو سره هم هغه وه چې کومه نن ورځې په هندوستان کښې او په صوبه سرحد کښې د پښتنو خانانو سره هغوي ساتلے ده. هر چا به چې برنس سره ملاقات کول غوښتل نو هغۀ به د ملاقات د شرف حاصلولو نه وړومبے په ګینټو دربان سره په انتظار کښې ناست وۀ او بیا د ډېر انتظار نه پس به برنس هغوي سره د ملاقات کولو نه انکار وکړو حقیقت دا وۀ چې د برنس او میکناټن په خپل منځکښې ناچاقي وه او برنس دا نۀ غوښتل چې زۀ د کابل سردارانو سره د سلطنت په امورو کښې تعلقات وساتم په دې باندې هم سرداران ډېر خفه وو ځکه چې میکناټن ته خو د هغوي رسائي ډېره مشکله وه او برنس به د دې خپلې متکبرانه رویې متعلق دا وئیل :

"I am hardly to be blunded for I have no responsiblity and why shoud I work.

ترجمه : " په ما هیڅ ملامت نشته ځکه چې زما هیڅ ذمه واري نشته او زۀ هسې ولې کار وکړم."

د دې بې عزتو نه علاوه دې فیرنګیانو د دې سردارانو په ننګ و ناموس باندې دست درازۍ شروع کړې وے. یو فیرنګي افسر د سردار عبدالله جان اچکزي د کور نه یوه وینځه وتښتوله او اګر چې هغۀ دې افسر ته ډېر پیغامونه ور واستول ولې هغۀ پرې هیڅ غوږ

کښېنښودو. اخر عبدالله خان اچکزي خپل ورارهٔ برنس ته په فریاد راولیږو. برنس د خپل قوم د رعب داب ساتلو دپاره هغهٔ ته څهٔ تحریري حکم خو ونهٔ لیکلو ولې خپل یو چپړاسي ئې هغهٔ سره واستولو چې کهٔ چرې هغه ښځه د دغې افسر په کور کښې موجوده وي نو چې هغه ورته واپس کړي.

څهٔ وخت چې دا دواړه د هغې افسر کور ته وروسیدل او هغې وینځې هغوي ولیدل نو هغه وتښتیده او پته شوه لږ ساعت پس دا افسر راووتلو او د عبدالله جان ورارهٔ او هغه چپړاسي ته ئې ډیر قهر او زورنه وکړه هغوي برنس ته واپس راغلل او ټوله قصه ئې ورته تیره کړه مګر برنس په ځاے د دې چې د هغوي دادرسي کړې وے هغهٔ هم هغوي ته ډیر بدرد ووئیل. چې "تاسو په خپل صاحب لوګ باندې دروغ الزام لګوئ" د دې نه پس ئې د عبدالله خان ورارهٔ د خپله کوره وشړلو او ډیر ئې بې عزته کړو.

یو بل فیرنګي افسر چې د نواب جبار خان په کور کښې په طور د میلمه وسیدو هغهٔ د ناظر علي محمد د خپل ګاونډي ښځه راښیزه کړه او خپل کور ته ئې راوسته. د دې معاملې رپورټ موهن لعل برنس ته په داسې وخت کښې وکړو چې هغه ملزم انګریز افسر هغهٔ سره د سحر ناشته یو ځاے خوړله دغه افسر بالکل په دروغه او په بې ایمانۍ د دې الزام نه انکار وکړو چې ما هډو د سره دا ښځه لیدلې نهٔ ده. په دې باندې هغهٔ ناظر د خپلې عهدې نه برطرف کړو. ناظر بیا خپل فریاد وزیر ته وکړو هغهٔ برنس ته حکم راولیږلو چې دې سړي ته خپله ښځهٔ واپس ورکړئ. کوم سپاهي چې وزیر برنس له رالیږلے وهٔ هغهٔ په خپلو سترګو دا ښځه د دې افسر کره ولیده او د هغهٔ برخلاف ئې بیان هم وکړو ولې برنس د خپل فیرنګي ورور پره وکړه. او دغه شان د دواړو په مصلحت د ناظر نه ښځه لاړه. یو څو ورځې پس دې انګریزي افسر د بادشاه هغې کوتوال ته چې چا د هغهٔ خلاف شهادت کړے وهٔ دا بهانه جوړه کړه چې دې کوتوال زما بې عزتي کړې ده چنانچه د برنس په وینا بادشاه هغه خپل سپاهي هم موقوف کړو. بیا به د ناظر دا ښځه دې انګریزي افسر په جهر ساتله او څهٔ لږه موده پس ئې هندوستان ته راوستله.

د نانچي یو لوے دولتمند سوداګر د هرات په یوې ښکلې جینۍ باندې مئین شو او د ډیر تکلیف او روپو لګولو نه پس ئې هغه وادهٔ کړه. او بیا ئې په کابل کښې خپلو رشته دارانو سره وسیدو ته پاتې کړه او په خپله بخارا ته د سوداګرۍ دپاره لاړو د خښتن په غیر حاضرۍ کښې دا جینۍ د فوځ د سټاف افسر یو ماتحت فیرنګي چاونۍ ته متېیزه کړه. هرکله چې د دې جینۍ خښتن په بخارا کښې خبر شو نو هغهٔ خپل ټول مال په هغه ځاے کښې پرېښودو او کابل ته په شتاب راغے. رارسیدو سره هغهٔ بیل بیل انګریزي افسر، بادشاه او وزیر ته فریادونه وکړل مګر هیچا ئې هم څهٔ واؤنهٔ ریدل اخر هغه د میکناټن په دروازه کښې کښیناستو او ورته

ئ ووئيل چې تر څو پورې تاسو زما ښځه ماته حواله نهٔ کړئ زهٔ به ځان ستا په دروازه کښې مړ کـړم. د دې خبـرې دومره اثر په ميکناټن وشو چې اخر هغهٔ حکم وکړو چې دا جينۍ دې خپل ښځښتن تـه واپس کړې شي. مگر هر کله چې دا حکم هغه انگريزي افسر ته ورسيدو نو هغهٔ په ځـاے د تـعـمـيـل کـولـو هـغه جينۍ د کابل په ښار کښې خپل يو بل ورور فوځي افسر کره پټه کـړه. ميکـنـاټن بيا خپل يو دوه اردليان مقرر کړل چې دا جينۍ دې د هغه کور نه راوباسي او خپـل ښځښتـن تـه دې ورکړې شي ولې بيا هم هغه افسر چې چا د ناظر علي ښځه تښتولے وه او خضر خان کوتوال ئ موقوف کړے وهٔ برنس له راغے او ورته ئ سوال وکړو چې تهٔ ميکناټن تـه خـط وليـکـه چـې هـغه خپل حکم واپس واخلي. چنانچه برنس ميکناټن ته خط وليکلو او ميکـنـاټـن دا تـجـويـز وکړو چې د دې جينۍ خاوند ته دې څلور يا پنځهٔ سوه روپۍ عوضامه ورکـړې شـي. او هـغه دې خپله ښځه پريږدي پس برنس نائب شريف او حيات قافله باشي په دې غـرض مـقرر کړل چې تاسو د دې جينۍ ښځښتن په دې مجبور کړئ چې هغه دا رقم منظور کړي کهٔ نهٔ وي نو زهٔ به ډير ناراض شم. لاچار دا سړے سخت خفه شو او بغير د روپو اخستو نه ترکستان ته وتښتيدو. دا جينۍ غازيانو سره د خپله ياره د گندمک په لاره کښې څهٔ وخت چې انگريزي فوځ هندوستان ته په تيښته روان وهٔ د انقلاب په دوران کښې قتل کړه.

دغـه شـان دوؤ نـورو افسـرانو د نواب محمد زمان خان او د قدوس خان د کور خلقو سـره آمـدورفـت شروع کړو او بد راه ئ کړې. هر څومره چې زمان خان او قدوس خان هغې افسـرانـو تـه د دې ښځـو د واپـس کـولو دپاره خطونه وليکل ولې هغوي هيڅ وانهٔ وريدل او هـغوي ئ بدستور د ځان سره وساتلے. د نواب محمد زمان خان ښځه بيا هغې افسر څهٔ وخت چې د هغهٔ خپله ښځه راورسيده د خپل کور نه وشړله.

مير احمد خان د عبدالله خان اچکزي ورور د قندهار نه کابل ته د خپلې چنغلې سره د نـکـاح کولو دپاره راروان وهٔ څهٔ وخت چې هغه غزني ته راورسيدو نو ورته معلومه شوه چې د هـغـهٔ چنغله يو فيرنگي تښتولے ده چنانچه هغه هم د غزني نه واپس لاړو او هغې فيرنگي د هغهٔ چنغله لدهيانې ته واپس وليږله.

د دې نـه عـلاوه نـور بيشـمـاره دا قسـم کـارونـه فيرنگيانو د پښتنو ښځو سره د خپل حکومت او زور په نشه کښې کړي وو او په دې وجه د افغانستان د هر يو سردار په زړهٔ کښې د غيـرت ويـنـې جـوش ووهلو او په دې انتظار کښې وو چې څرنگ به د خپل ننگ و ناموس بدل واخلو.

هـم پـه دې ورځـو کښـې دا خبره په درانو او قزلباشو سردارانو کښې خوره شوه چې فيـرنـگيـان عـنـقـريـب د ټولو هغه خانانو او سردارانو د گرفتارولو اراده لري چې چا باندې د هغوي د مخالفت لاَ د خفگان شک راځي. او ډير زر به دا ټول سرداران د ميکناټن د نگرانۍ

د لاندې جلا وطن کړي. د دې خبر اطلاع هر يو سردار او خان ته د يو خفيه ګشتي چيټي په ذريعه ورکړې شوه او دغه رنګ هغوي بيل بيل په ځان ويريدل چونکې د کابل او د هغې د مضافاتو د سردارانو ماجبونه ټول کم کړے شوے وو او هر چا د دې متعلق د خفګان اظهار فيرنګيانو ته کړے وۀ له دې کبله هغوي هر يو دا اراده وکړه چې په هر شان چې وي مونږ د دې فيرنګيانو د حکومت د بلا نه ځان خلاص کړو په دې موقع عبدالله خان اچکزي قرآن شريف په لاس امين الله خان غلجي له راغلو او ورته ئې درخواست وکړو چې د خدائے او د قوم په خاطر مونږ سره د دې ازادۍ په جنګ کښې په مرسته ودريږه او د دې راتلونکي انقلاب مشري قبوله کړه. امين الله خان بالاخر دا خبره منظوره کړه او د ټولو قومي مشرانو يوه جرګه راغونډه شوه چې په هغې کښې دا مشران سرداران هم شامل وو سکندر خان، عبدالسلام خان، ميرافضل خان، مير احمد خان، عبدالصمد خان، محمد حسين خان عرض بيګي، حاجي علي، خضر خان کوتوال ، مير جنيد، محمد خان بيات، محمد عظيم پيش خدمت، ناظر علي محمد، مير آفتاب، مرزا مير، عبدالرحيم محتسب، مير محبوب، مير حاجي، مير سيد خان، مير غلام قادر، آغا حسين، د ميرداد خان هوتکي زامن ، ولي مير آخور، اکبر خان خوابګاهي، عبدالرحمٰن عثمان لو.

دې جرګې په قرآن شريف باندې قسم وخوړو چې تر څو پورې مو افغانستان د فيرنګيانو د لاسه ازاد کړے نۀ وي تر هغې به ارام ونۀ کړو. امين الله خان او عبد الله خان اچکزي دا تجويز پيش کړو چې د ټولو نه وړومبے برنس او کوم افسران چې په ښار کښې دننه وسيږي د هغوي فيصله کول پکار دي. د دې نه پس د کابل سردارانو بيلې بيلې صوبې ته خپل سړي د دې غرض دپاره وليږل چې هغوي دې هم ټول په يو مقرره وخت باندې د بغاوت دپاره تياري وکړي. د دې سړو په ذريعه هغوي د هرې يوې قبيلې سردار ته دا اطلاع ور ورسوله چې ډير زر فيرنګيان تاسو ټول هندوستان ته جلا وطن کونکي دي. په دې طريقه ټولې قبيلې او د هغوي مشران هم د فيرنګيانو برخلاف بالکل تيار شول. چنانچه هغوي سمدستي د کابل او د قندهار په منځکښې ټولې د آمدورفت لارې بندې کړې.

انګريزان د دې جرګو او مصلحتونو نه بې خبره نۀ وو ولې د هغوي دا خيال وۀ چې دا صرف د سردارانو د خپلو ماجبونو د زياتولو دپاره دب دهړکې دي. تر دې پورې چې څۀ وخت عبدالله خان اچکزي په ښکاره قسم وخوړو چې په اتو ورځو کښې به دننه دننه د برنس سر پريکوم او خفيه طور باندې هغۀ ته د دې خبرې اطلاع ورسيده نو هغه پوهه شو چې معامله دومره سپکه نۀ ده او وې وئيل چې اوس هغه وخت راغلے دے چې مونږ له دا وطن پريښودل پکار دي. مګر سره د دې هغۀ د خپلې ويرې او د خوف اظهار صرف په دې وجه چاته ونۀ کړو چې دا به د فيرنګيانو بزدلي وګڼلے شي.

په دويم نومبر 1841ء سحر وختي د عبدالله خان اچکزي د رابللو دپاره برنس خپل يو نوکر د هغهٔ کور ته وليږلو مگر چونکې د هغهٔ په زړهٔ کښې دا خيال وهٔ چې ما په دوکه برنس نيول غواړي او هندوستان ته مې جلاوطن کوي له دې کبله هغهٔ د راتلو نه انکار وکړو او دا خيال ئې وکړو چې چونکې برنس به اوس ما په زور گرفتاروي دا به بهتره وي چې د موجوده بغاوت ابتدا هم نن وشي. چنانچه هغهٔ د ټولو نه وړومبې د برنس هغه قاصد قتل کړو چې کوم د هغهٔ د رابللو دپاره راغلے وهٔ. او بيا سمدستي سره د نورو سردارانو او د هغوي د سړو قريباً شپږ نيمې شلې کسان د برنس په کور د چپاؤ په غرض ور روان شو په لاره کښې هم هر څومره افسران او سپاهيان چې د هغوي مخې له راغلل هغوي هغه بې دريغه قتل کړل. برنس ته فوراً د دې واقعاتو خبر وشو چنانچه هغهٔ د خپل کور بهرنى لويه دروازه پورې کړه او د هغې شا ته ئې لوے لوے گټان، تختې د اړمونو دپاره کښيښودے او يو خط ئې د ميکناټن په نوم باندې د فوځي امداد د راستولو دپاره وليږلو.

نظام الدوله چې د انگريزانو سړے وهٔ هغه چې څهٔ وخت دا حال وليدو نو هغهٔ برنس ته په بالا حصار کښې دننه د پناه اخستو مشوره ورکړه. چنانچه هغهٔ په خپل اس باندې زين واچولو او تلو ته تيار شو ولې جمعدار نتهو هغهٔ ته ووئيل چې تا ميکناټن ته د فوځي امداد دپاره ليکلي دي او پکار دي چې تهٔ د هغهٔ د جواب انتظار وکړې. په دې باندې هغه بالاحصار ته د تښتيدو هغه اراده پريښوده او نظام الدوله ته ئې ووئيل چې زهٔ خپل کور په هيڅ وجه نهٔ پريږدم. د دې نه پس نظام الدوله بالاحصار ته سره د خپلو محافظو دستو وتښتيدو او برنس ته ئې ووئيل چې زهٔ به ډير زر د بادشاه خپل فوځ ستا د حفاظت دپاره راولم. په دې اثنا کښې د ازادئ د جنگ سرفروشان د عبدالله خان اچکزي، امين الله خان، سکندر او عبدالسلام خان د سرکردگئ د لاندې د برنس باغ ته راورسيدل. برنس چې دا تماشه وليده نو خپل يو سيد نوکر او حميد يو سور ئې دې سردارانو له راوليږلو او ورته ئې ووئيل چې اخر دا ولې دا شان ناساپي تاسو زمونږ برخلاف بغاوت وکړو او ورته ئې دا هم ووئيل چې زهٔ ستاسو ټول سابقه حقوق به تاسو ته واپس کړم.

اصلي وجه د دې مواجبو د کمی دا وه چې هرکله ميکناټن د بمبئ د گورنرئ دپاره نامزد شو نو د هغهٔ دا خيال وهٔ او دا صحيح هم وهٔ چې برنس به زما په ځاے د افغانستان سفير مقررېږي. او چونکې برنس سره د هغهٔ ناچاقي وه په دې وجه هغهٔ په ډيرې لاپروايئ او بغير د نتائجو د غور نه د لارډ آکلينډ د هداياتو په مطابق د سردارانو او د قبائلو په مواجبو کښې کمے راوستو. او دا خيال ئې وکړو چې کهٔ څهٔ شورو شر د دې برخلاف وشو نو برنس به ئې د دفع کولو ذمه وار وي. اګر چې برنس په خپله د دې قسم کفايت شعارئ سخت برخلاف وهٔ مگر چونکې هغه د ميکناټن ماتحت وهٔ او د عامې پاليسئ ذمه وار ميکناټن وهٔ د دې دپاره د

هغهٔ تجویزونو ته چا څهٔ ډیره توجه نهٔ کوله. برنس چې څهٔ وخت دا دوه سرې دې سردارانو له واستول نو اوبهٔ د ورخه تیرې شوې وې. هغوي ته دا معلومه وه چې اوس په شا کیدل د هغوي د هلاکت او د تباهي باعث دي. چنانچه د برنس هغې سید نوکر لا خبره خلاصه کړې نهٔ وه چې سکندر خان د تورې په یو ګوزار سره د هغهٔ سر د تن نه جدا کړو. د سید هغه بل ملګرے سمدستي د موقعې نه وتښتیدو او ځان ئې خلاص کړو. د دې نه پس د پښتنو دا ورکوټے ټولے د چارچاپیره کورونو په چتونو وروختل او د برنس د کور په باغ کښې ورداخل شول. چنانچه هغهٔ د خپل مکان د دویم چت نه غازیانو ته اواز وکړو چې کهٔ چرې تاسو ټول واپس لاړ شئ نو زهٔ به تاسو ټولو له ډیر زیات انعام درکړم لا هغهٔ خلقو سره دا خبرې کولے چې کپتان براډفټ په یوه ګولۍ باندې په ګیډه ولګیدو او سرالیګزنډر برنس او چارلس برنس چې د سر الیګزنډر برنس ورور وهٔ هغه ښکته راوړو.

اوس د غازیانو او د برنس په محافظه دسته کښې زبردست جنګ شروع شو د برنس څنې نوکرانو هغهٔ ته دا تجویز پیش کړو چې تهٔ ځان په یوه خیمه کښې پټ کړه او لکه چې څرنګ څوک د لوټ مال تښتوي دغه شان به مونږ تا ددې ځائے نه وباسو. ولې هغهٔ ورته په جواب کښې ووې چې نهٔ خو زهٔ خپل ورور پریښودے شم او نهٔ خپل زخمي ملګرے کپتان براډفټ پریښودے شم. د دې نه پس خضر خان کوتوال چې د سابقه خفګان په وجه د برنس جاني دشمن شوے وهٔ هغه سره د حاجي علي، هاشم کاه فروش وغیره د باغ دروازې ته اور ولګولو. د اور لمبې ډیر زر هغه کمرې ته ورسیدے چې په کوم ځائے کښې برنس او د هغهٔ ورور ولاړ وو. برنس او د هغهٔ ورور او س خلقو ته د خپل سر د امن خواست وکړو. د دې نه پسته چارلس برنس باغ ته راووتل او غازیانو سره ئې لاس په لاس جنګ شروع کړو او په جنګ کښې قتل شو. اوس د غازیانو شمار ډیر زیات شوے وهٔ اوس خلق د موهن لعل کور ته هم په هغهٔ باندې د حملې کولو په غرض ورغلل. موهن لعل د خپل کور دروازې پورې کړې او د خوا د کور په یو دیوال کښې ئې د سورې په لار باندې د کور نه په دې غرض وتښتیدو چې د خان شیرین خان نه د برنس د امداد او د خپل کور د حفاظت دپاره سرې راولم. ولې څهٔ وخت چې هغه د کوڅې نه راووتلو نو ناظر علي او د غازیانو نه یو څو تنو نورو هغهٔ راونیولو او نزدې وه چې وژلے ئې وے. ولې په دې کښې نواب محمد زمان خان چې یو ډیر رحمدل او شریف پښتون وهٔ د خپله کوره راووتلو او د خپل زوي شجاع الدوله له لاسه چې هغه هم په دې ټولي کښې شامل وهٔ هغهٔ موهن لعل خلاص کړو او په خپل کور کښې ئې ورله پناه ورکړه. د محمد زمان خان زنانوو د موهن لعل ډیر قدر او عزت وکړو او د خوراک دپاره ئې ورله پلاؤ ورکړو.

شاه شجاع خپله یوه پلټن د کیمبل د مشرۍ د لاندې د برنس د حفاظت دپاره

راولیږله مگر غازیانو په دې فوځ باندې دومره سخته حمله وکړه چې په هغوي کښې یو زنده سر هم پاتې نهٔ شو او د هغوي ټولې توپې د غازیانو په لاس راغلے. سر الیگزنډر برنس او محافظې دستې اوس د ځان د حفاظت دپاره په ډیرې حوصلې او استقلال سره مقابله شروع کړه ځهٔ وخت چې د اور لمبې هغې کمرې ته راورسیدې چې په کومه کښې برنس پناه اخستې وه نو هغه لاچار د کمرې دروازې نه راووتو او غازیانو ته ئې په ډیرې زارۍ او منت سره سوال وکړو چې ما مهٔ وژنئ مگر ناظر علي محمد او خضر خان کوتوال او د عبدالله خان اچکزي وراره چې د برنس د سابقه بدسلوکۍ له کبله د هغهٔ سخت دشمنان شوي وو هغهٔ ته ډیر بدرد ووئیل او حمله ئې پرې وکړه. د دې نه پس هغهٔ خپلې سترگې په رومال باندې وتړلے او دروازې ته بهر راووتو او یو ساعت کښې غازیانو هغه ټکړه ټکړه کړو او بیا غازیانو د برنس د مرگ نه پس د کپتان جانسن کور او خزانه لوټ کړه. او ټوله ابادي ئې ورله زمکې سره سمه کړه هر کله چې میکناټن د دې واقعاتو نه خبر شو نو هغهٔ سمدستي جنرل ایلفنسټن ته د فوځي کارروایۍ د پاره ولیکل. جنرل ایلفنسټن فوراً بریگیډیر شیلټن ته چې د سیاه سنگ په مقام باندې سره د خپله فوځه پروت وهٔ حکم ورکړو چې سمدستي سره د خپله فوځه بالاحصار کښې د شاه شجاع سره یو ځاے شه او په ښار باندې گوله باري وکړئ. لا هر ځهٔ چې هغهٔ ته مناسب ښکاري هغه شان وکړئ.

چنانچه بریگیډیر شیلټن سره د 44 نمبر پلټن پیاده د یوې کمپنۍ او د 54 نمبر پلټنې د یوې دستې چې د میجر ایورټ د لاندې وه او د بادشاه د شپږم نمبر پلټنې چې د کپتان هاپکنز د لاندې وه او څلور د اسونو توپې چې د کپتان نکول د لاندې وے بالاحصار ته راغلو. باقي فوځ چې په سیاه سنگ کښې پروت وهٔ هغوي ته حکم وشو چې سمدستي چاونۍ ته راروان شئ. په دوئ کښې 44 نمبر پلټن پیاده چې د لفټیننټ کرنل میکرل د لاندې وه او د اینډرسن بې قاعدې رساله او دوه د اسونو توپې چې د لفټیننټ والر زیر کمان وے شامل وے د خورد کابل نه هم ټول فوځ واپس چاونۍ ته راوبللے شو په دې ورځو کښې په چاونۍ کښې دا دا فوځونه د فیرنگیانو موجود وو.

(۱) پنځم نمبر پلټن زیر کمان لفټیننټ کرنل آیور (۲) یوه دسته د 54 نمبر پلټنې (۳) پنځهٔ شپږ پونډر فیلډ توپې سره د شاهي توپخانې د یوې دستې چې د لفټیننټ وار برټن د لاندې وه (۴) د میکناټن باډې گارډز (۵) یو ترب د سیکنرز هارس (۶) او یو بل ترب د مقامي خلقو د رسالې چې د لفټیننټ واکر د لاندې وه (۷) د دې کمپنۍ د بادشاه د سپرمینا چې د کپتان والش لاندې وے او قریباً شل تنه د فیرنگیانو د سپر مینا سرې وو چې د کپتان پیټن اسسټنټ کوارټر ماسټر جنرل د لاندې وو.

هر کله چې د غازیانو د برنس او د کپتان جانسن د خزانې کورونه وسوزول نو نورو

غـازیـانو د کپتان ټریور په قلعه او د بریګیډیر اینکویتیل او د کپتان کالن میکنزي او د کپتان ټـروپ په کورونو چې دوئ ټول په ښار کښې دننه د قزلباشو د چم نه قطب ته او د دیهه افغان نه نمرخاتۀ ته وسیدل، حمله وکړه.

دې افسـرانو هـم چاوڼـۍ تـه د امـداد دپـاره خطونه ولیکل مګر چونکې د ازادۍ دا جنګ داسې ناساپې او سمدستې شروع شوے وۀ چې د هر یو فیرنګي نه او خصوصاً د چاوڼۍ د هـر فوځي افسر نه بالکل وار پار خطا شوے وۀ. د دې ښار په دننه افسرانو، محافظو دستو او هـمـراهـي فـوځ اګر چې په ډیرې جانبـازۍ سره د غازیانو مقابله وکړه مګر چونکې د غازیانو جـوش او شـمـار سـاعت په ساعت زیاتیدو او د انګریزي فوځ د خپلو شکستونو د خبرونو په اوریـدو سره هـمـت نسبتاً هره ګړۍ په کمیدو وۀ په دې سبب غازیانو په دریم نومبر د کپتان ټریور په قلعه باندې پوره قبضه وکړه د هغه ځاے نه غازیانو بریګیډیر اینکویتیل په قلعه باندې د خپـلو جزائلو نه دا شان تباه کن ګوله باري وکړه چې د هغې قلعې ټولو سپاهیانو ځان ځان له د تښتیدو بنا وکړه.

اخـر پـه دریـم نـومبـر د شپـې دې ټولو افسرانو چاوڼۍ ته د تیښتې قصد وکړو. دا د روژې میـاشـت وه لـه دې کبله فیرنګیانو دا خیال وکړو چې څۀ وخت ماښام غازیان ډوډۍ ته کښینـي او بیـا د تـراویـحو پـه مـانـځۀ کښې مشغول شي نو مونږ به پټ په پټه چاوڼۍ ته لار واخـلـو. پـس د ماښام نه هغوي ټول زخمیان په یابوانو باندې وتړل مال اسباب ئې ټول په قلا کښې پـریـښـودو جـزائـل چیـان ئې د ټـولـو نـه مـخکښې کړل هغوي پسې ئې سپاهیان او د هـنـدوسـتـاني افسرانو ښځې او بچي روان کړل او باقاعده فوځ سره کپتان میکنزئ د ټولو نه شـاتـه راروان شو. چونکې دې فوځ سره ښځې او بچي هم ډیر وو او هغوي په لاره باندې ژړا او فـریـادونـه کـول نو د غازیانو څۀ خلق هم د هغوي په روانیدو باندې خبر شول او اګر چې د هـغـوي نیـت صـرف د فیـرنـګیانو د وژلو وۀ خو په هغې تیارۍ کښې د فیرنګي او هندوستاني تـمـیـز نـۀ کیـدو. په دې وجه څۀ وخت چې هغوي په کپتان میکنزي حمله وکړه نو پنځۀ شپږ هندوستانیان هم پکښې مړۀ شول.

څـۀ ورځې پس کپتان ټریور او د هغۀ بال بچ چاوڼۍ ته بالکل محفوظ وتښتیدل ځکه چې خـان شیرین خان چې د قزلباشو مشر وۀ هغه کپتان ټریور په ځپل کور کښې پټ کړو او بیا ئې په خپل حفاظت کښې چاوڼۍ ته راوستو.

هـر کـلـه چې شیلټن ته حکم وشو چې تۀ د خپل فوځ یوې دستې سره د سیاه سنګ نه بـالاحصار ته لاړ شه نو میکناټن کپتان لارنس بادشاه ته په دې غرض ولیږو چې هغه بادشاه د دې نـه خبر کړي او د هغۀ راتلو ته ئې تیار کړي. کپتان لارنس څلورو سورو سره بالاحصار ته روان شـو. او لا دریـائـے کـابـل نه په مشکله پورې وتے وۀ چې یو پښتون په هغۀ باندې د پیش

قبضې ګوزار وکړو لارنس اس له پونده ورکړه او ځان ئ د هغهٔ د ګوزار نه بچ کړو. مګر لا ډیر لرې نهٔ وهٔ تلے چې د ښار د لاهورۍ دروازې نه پنځوس تنه غازیان د هغهٔ مخې ته ودریدل او ډزې ئ پرې وکړې مګر خطا شو. او دغه شان لارنس بالاحصار ته ورسیدو. کپتان لارنس چې بادشاه ولیدو نو هغه ډیر غمژن او فکرمند ناست وهٔ ځکه چې د هغهٔ دا یقین نهٔ وهٔ چې دا تحریک به دومره خطرناک شکل اختیاروي. بادشاه د دې خطرې په وخت کښې فیرنګیانو سره بیا د هر قسم وعده وکړه.

د دې نه قبل شاه شجاع شهزاده فتح جنګ ښار ته د دې مطلب دپاره استولے وهٔ چې په خلقو کښې امن قائم کړي او غازیان په قلاره کړي. مګر شهزاده فتح جنګ د فیرنګیانو د دست درازو نه او مغرورانه رویې نه او لویو لویو سردارانو سره د بدسلوکۍ په وجه دومره ناراض وهٔ چې په ځاے د دې چې هغهٔ خلق د بغاوت کولو نه منع کړے وے نو هغهٔ هغوي ته شاباش ورکړو او ورته ئ ووئیل چې نن ځان د دین ملګري ثابت کړئ او د کافرو بیخ وباسئ.

"Prove yourselves to be the champions of the faith and destroy the infirels."

کپتان لارنس لا هم هغه شان بادشاه سره خبرې کولے چې لفټیننټ سټرټ انګریزي ایګزیکټیو انجنیر بالاحصار ته درې ځایه زخمي رادننه شو. بریګیډیر شیلټن دا سټرټ بالاحصار ته د فوځ د وسیدو د انتظام دپاره رالیږلے وهٔ. څهٔ وخت چې دې د دیوان خانې دروازې ته راورسیدو نو غازیانو په هغهٔ باندې د تورې ګوزار وکړو مګر د سټرټ د ښې ورځې نه هغه زخمونه خطرناک ثابت نهٔ شول. او لفټیننټ سټرټ بادشاه په خپل چوپان واپس چاونۍ ته د خپلو سرو د یوې دستې د حفاظت د لاندې واستولو هم په دغه ورځ بریګیډیر شیلټن بالاحصار ته راورسیدو. د انګریزي فوځ د بدې ورځې نه میجر جنرل ایلفنسټن د خپل ضعیف العمرۍ او د یوې وږدې بیمارۍ په وجه ډیر کمزورے شوے وهٔ. چې هغه د فوځي چستۍ او د نور کاروبار بالکل ناقابل پاتې شوے وهٔ. چنانچه د ازادۍ د دې جنګ د شروع کیدو نه یو څو ورځې وړومبے هغهٔ کلکتې ته دا خبر لیږلے وهٔ چې زما صحت بالکل تباه شوے دے او زهٔ د فوځ کمان نور نهٔ شم کولے. چنانچه هغه په یو څو ورځو کښې هندوستان ته او د هغه ځاے نه انګلستان ته په چوټۍ د روانیدو اراده کړې وه چې ناساپي په دویم نومبر دا انقلاب شروع شو. هم د دې بیمارۍ او کمزورۍ نتیجه وه چې د غازیانو برخلاف فوځي کارروائي چې په کومه چستۍ باندې کول د فیرنګیانو عادت وهٔ هغه په عمل کښې رانغله. په جنرل ایلفنسټن کښې بل لوے عیب دا وهٔ چې د بوډا والي او د کمزوري صحت په وجه هغهٔ کښې خوداعتمادي پاتې شوې نهٔ وه. او په دې وجه به هغهٔ د هر چا رائ له په خپله رائ باندې فوقیت ورکولو او چونکې د هغهٔ په ماتحتانو کښې به لازمي طور اختلاف

رائ موجود وه. په دې سبب به هغهٔ په خپل زړهٔ کښې زر فيصله نهٔ شوه کولے. نتيجه دا شوه چې هر کله به يو تجويز د بيشانه ډير بحث مباحثې او د رد و کد نه منظور هم شو نو په هغې باندې به بيا عمل په ډيرې سستۍ او بې اعتبارۍ کيدلو. فيرنګيانو ته چې څهٔ وخت د دې تحريک د وسعت او د زور پته ولګيده نو هغوي د چاونۍ د حفاظت دپاره د هر قسم بندوبست شروع کړو توپې په خپل خپل ځاے باندې فصيل نه چاپيره کښيښودے شوې د ميخزين نه شپږ نهٔ پاؤنډر د اوسپنې توپې او درې څليريشت پونډر هاوټزر او درې پنځهٔ انچ خلې واله توپې راوښکلې شوې او په خپل خپل ځاے ولګولے شوے.

يوه بله خرابي دا وه چې د فيرنګيانو د چاونۍ محل وقوع دا شان وهٔ چې د فوځي نقطهٔ نګاه نه د هغې حالت ډير کمزورے وهٔ کوم ځاے کښې چې د فيرنګيانو ميخزين پروت وهٔ او په کوم ځاے کښې چې د هغوي چاونۍ وه د هغې نه چارچاپيره وچت وچت غرونه او د پښتنو وچتې وچتې قلعه ګانې پرتې وے. د ټولې چاونۍ نه چارچاپيره يو معمولي شان ديوال وهٔ او يو معمولي کهی کنستے شوے وه د چاونۍ په خوا کښې د ميکناټن او د هغهٔ د افسرانو او د محافظې دستې ځايونه وو. د دې نقصونو نه علاوه د کمسريټ ټول سامان د چاونۍ نه بهر په يوه زړه قلعه کښې پروت وهٔ. کپتان سکنر چې چيف کمسريټ افسر وهٔ هغهٔ ډير کوشش کړے وهٔ چې زما کمسريټ له دې دننه په چاونۍ کښې ځاے ورکړې شي مګر د هغهٔ په خبره چا غوږ نهٔ کښيښودو. د چاونۍ نه قبله په سهيل د چاونۍ بازار وهٔ. د دې نه بالکل بالمقابل په ډيره لږه فاصله باندې د محمد شريف قلعه پرته وه. چې دا د چاونۍ د قبلې سهيل په کوټ باندې بالکل سوره پرته وه. دې قلعې سره جخت په خوا کښې د بادشاه باغ وهٔ چې شاه باغ به ئ ورته وئيلو. او د هغې نه چارچاپيره ډير وچت ديوال وهٔ. د دې نه دوه سوه ګزه ښار طرف ته لرې د کمسريټ قلعه وه چې د هغې دروازه د شاه باغ د دروازې بالکل مخامخ وه.

غرض دا چې چارچاپيره د چاونۍ نه په څلور طرفه لا خو غرونه سوارهٔ وو او لا برجونه او قلعه ګانې وے. د بې مارو کلے چې د هغې په خوا کښې وچتې وچتې غونډۍ وے هغه د ميکناټن او د هغهٔ د افسرانو د ځايونو بالکل د پاسه پرتې وے. په دې هره يوه قلعه او برج کښې غازيانو داسې سړي مقرر کړل چې هيڅ نښه به د هغوي نه نهٔ خطا کيده. او په دې وجه د چاونۍ نه د فوځ دپاره راوتل او په دې قلعه ګانو او برجونو باندې حمله کول د هغوي دپاره ډير مشکل کار وهٔ.

په دريم نومبر د خورد کابل نه 37 نمبر پلټن د ميجر ګرفتهـ د کمان لاندې چاونۍ ته راورسيدهٔ او اګر چې درې زرو غلجو چپه په چپه د هغوي مقابله وکړه مګر د لفټيننټ ګرين د دريو توپو په امداد سره دا فوځ بغير د څهٔ خاص قسم د نقصان وچتولو نه چاونۍ ته رادننه شو.

د دې نه پس څهٔ نور فوځ هم بالاحصار ته د امداد دپاره بریګیډیر شیلټن ته راواستولے شو. د بالاحصار ټول فوځ سره د توپخانې د کابل په ټول ښار باندې بغیر د غازي او د غیر غازي د تمیز نه ګوله باري وکړه. حالانکې د برنس وغیره په قتل کښې قریباً پنځهٔ شپږ سوه خلق به شامل وو. د دې عامې ګوله بارۍ ډیر خراب اثر د ښار په عامې ابادۍ وشو. چې هغوي ټولو په اتفاق سره خپل خپل کورونه خالي کړل او غازیانو سره د فیرنګیانو برخلاف شامل شول. او بل خوا ته ئې په مضافاتو کښې چارچاپیره د کومک دپاره سړي ولیږل او بیشماره ډیر کوهستانیان او غلجي د هغوي امداد ته سره د وسلو راغلل. او س ورځ په ورځ د غازیانو او د فیرنګیانو د باقاعده فوځ په منځکښې سخت خونریز جنګونه شروع شو او کوم امید چې په ابتدا کښې د فیرنګیانو په زړهٔ کښې د دې بغاوت د دفع کولو وهٔ هغه ټول قطع شو. چنانچه هغوي د قندهار کمان افسر ته د امداد رالیږلو دپاره یو ډیر ضروري خبر ولیږو او جنرل سیل ته ئې حکم وکړو چې د ګندمک نه سره د خپل بریګیډ واپس چاونۍ ته راشه. هم په دې ورځ یعنې په دریم نومبر د کوهدرې په مقام لفټیننټ رچرډمال او لفټیننټ وهیلر د خپل کوهستاني رجمټې د لاسه قتل شو.

په څلورم د نومبر غازیانو په شاه باغ کښې مورچه ولګوله او د محمد شریف په قلعه کښې ئې د خپل لښکر یوه دسته واچوله. او دغه شان ئې د چاونۍ او د فیرنګیانو د کمسریټ د قلعه په منځکښې د تلو راتلو لاره بالکل بنده کړه. اینسائن وارن سره د سلو سړو د کمسریټ په قلعه باندې قابض وهٔ. غازیانو په دهٔ باندې په ډیر زور سره حمله وکړه. فیرنګیانو سره ویره پیدا شوه چې غازیان به ډیر زر دا افسر قتل کړي کهٔ چرې مونږ سمدستي هغهٔ له امداد ور ونهٔ لیږو. چنانچه اینسائن ګارډن سره د یوې کمپنۍ او یولسو اوښانو میخزین د هغهٔ امداد ته واستولے شو مګر غازیانو هم په لاره باندې دې امداډي دستې له شکست ورکړو او اینسائن ګارډن په جنګ کښې قتل شو. په دې باندې جنرل ایلفنسټن دوه نورې کمپنۍ د کپتان سوین د لاندې د هغهٔ امداد له ولیږلے مګر هغوي لا د چاونۍ نه هم په مشکله وتي وو چې د غازیانو نشان باز توپچیانو د محمد شریف د قلعه نه او د شاه باغ نه داسې زبردستې ګولۍ په هغوي باندې وورولے چې کپتان سوین او رابنسن د 44 نمبر پلټنې قتل شول. او لفټیننټ هلالهن او ایونز او فورټې زخمیان شول. او امدادي فوځ بغیر د خپل مقصد د حاصلولو نه چاونۍ ته واپس راغلل.

هم په دغه ورځ ماښام بیا د رسالې یوې دستې د اینسائن وارن د راوستو دپاره کوشش وکړو مګر غازیانو بیا داسې په نښنه په هغوي ګولۍ وورولے چې اتهٔ سپاهیان په هغوي کښې مړهٔ شول او څوارلس زخمیان شول.

د چاونۍ د خلقو د ګزارې ټول دارومدار د کمسریټ په دې قلعه باندې وهٔ د تمام

فوځ د رسد سامان يعني غنم، اوړه د هسپتال دارو، جامې وغيره چې د هغې قيمت څلور لکه روپۍ وه هم په دې قلعه کښې پروت وه. دغه وخت په چاونۍ کښې صرف د دوو ورځو خوراک موجود وه. څه وخت چې دا واقعات جنرل ايلفنسټن ته معلوم شول نو هغه اينسائن وارن ته حکم وليږلو چې په هر شان چې وي دا قلعه غازيانو ته پرې نه ږدے. معلوميږي چې دا حکم وارن ته ونه شو رسيدے پس هغه د شپې چاونۍ ته خبر واستولو چې که چرې نور فوځ زما د امداد دپاره رانغلو نو دشمن عنقريب زما قلعه ته سرنګ لګوي او هغه الوځوي. په دې صورت کښې زه د يو څو ګينټو نه زياتي د غازيانو مقابله نشم کولے. د چاونۍ نه هغه له په جواب کښې خبر ورغے چې دوه بجې د شپې به تاته امداد در ورسي.

نهه بجې د شپې فيرنګيانو خپله جنګي جرګه وکړه او په هغې کښې ميکناټن په دې خبره زور ورکړو چې که چرې مونږ په دې شپه کښې د محمد شريف قلعه وانه خسته نو د کمسريټ قلعه به زمونږ د لاسه وځي او فوځ به بالکل بې خوراکه پاتې شي. جنرل ايلفنسټن اګر چې د هغې ورځې د پرله پسې شکستونو په وجه باندې د شپې د حملې کولو په حق کښې نه وه مګر نورو افسرانو هغه ته رائ ورکړه چې پښتانه اکثر د شپې په څوکۍ کښې غافله وي. د دې دپاره که چرې مونږ په قلعه محمد شريف باندې د شپې په تيارۍ کښې ناساپې حمله وکړه نو غالباً چې مونږ به کامياب شو. چنانچه يو سړے د خبر راوړو دپاره پټ واستولے شو هغه په يو څو منټونو کښې خبر راوړو چې قريباً شل تنه د محمد شريف د قلعه نه بهر ناست دي چيلم څښي او خبرې کوي. د هغوي د خبرو نه معلوميږي چې د غازيانو شمار په قلعه کښې لږ دے. او زمونږ د ناساپه حملې د مقابلې طاقت نه لري. هم دغه شان تر څه وخته پورې بحث مباحثه جاري وه مګر جنرل ايلفنسټن په څه خاص فيصله باندې ونه رسيدو. بيا يو بل مخبر د نور حال معلومولو دپاره واستولے شو هغه هم د وړومبي مخبر د خبرې تصديق وکړو. اخر د ډير بحث نه پس لفټيننټ سټرټ انجنير دا رائ ورکړه چې چونکې غازيان د قلعه په دروازه باندې بيدار ناست دي د دې دپاره حمله د سحر خيرې سره کول پکار دي. جنرل د هغه خبرې سره اتفاق وکړو او احکام ئ صادر کړل چې د فوځ يوه دسته دې څلور بجې سحر د چاونۍ په کوهستاني دروازه ولاړه وي کپتان بيلو د دې کار دپاره ځان پيش کړو چې زه به دروازه والوځوم.

د 44 نمبر پلټنې يو ټولي ته حکم وشو چې تاسو به د چاونۍ د سهيل ديوال مات کړئ او سمدستي به د کمسريټ قلعه ته د وارن محافظې دستې سره ځان يو ځاے کړئ. د دې احکامو په تعميل کښې څومره چې چستي پکار وه هغه ونه شوه او سحر بڼه وچت راختلے وه چې ايله دا فوځ تيار شو او دا سپاهيان په روانيدو کښې وو چې خبر راغے چې وارن سره د خپلې فوځي دستې چاونۍ ته راوتښتيدو او د کمسريټ قلعه ئ غازيانو ته پرې

ښو ده.

واقعه دا شوې وه چې غازيانو د هغهٔ د قلا دروازې ته د شپې اور پورې کړے وۀ او هغهٔ ته په وخت باندې هيڅ امداد را ونۀ رسيدو نو هغه بالکل مايوس شو. هغهٔ بيا د قلا په يو ديوال کښې سورے وکړو او خپل سرې ئ ټول د هغې په ذريعه راوويستل. تر دې وخته پورې د کابل قزلباش غير جانبدار وو په دې طمع چې هسې نه چې انګريزان د غازيانو برخلاف کامياب شي.هغوي د ازادی په جنګ کښې لا شامل شوي نۀ وو ولې هر کله چې د کمسريټ په قلا غازيانو قبضه وکړه قزلباش هم غازيانو سره شامل شول.

په پنځم د نومبر غازيانو دا قلا مکمل طور باندې لوټ کړه او اکثر سامان ئ ترينه يوړو. انګريزانو ته فوراً ثابته شوه چې د دې قلا په تلو باندې د هغوي پاتې شوے رعب چې څهٔ وۀ هغه هم تباه شو. چنانچه هغوي بيا دا قصه وکړه چې بهر کيف د محمد شريف په قلا باندې چې د هغې نه هغوي ته سخت نقصان رسيدلے وۀ او د نور نقصان د رسيدو ورته هم خطره وه قبضه کول پکار دي. چنانچه د ميجر سوين د کمان لاندې يوه حمله آوره پارټي تياره کړې شوه او قريباً دولس بجې د غرمې د چاونۍ د قبلې په دروازه د حملې دپاره ووته. هر څومره چې په ډيره جانبازۍ اوّ زړورتيا دې ټولې د دې قلا د دروازې د الوځولو کوشش وکړو مګر کامياب نۀ شول او نۀ ميجر سوين د غازيانو د سختې ګوله بارۍ په سبب دروازې ته ورورړاندې شو.

په شپږم نومبر دا فيصله وشوه چې د محمد شريف په قلا باندې د قلعه شکن توپو ګوله باري پکار ده چې د هغې په ذريعه د قلا ديوالونه راوغورځيږي او بيا په باقاعده حمله باندې فوځ په هغې قابض شي.چنانچه پنځو توپو د لفټيننټ ايري او د لفټيننټ وار برټن د کمان لاندې دوه ګينټې متواتر ګوله باري وکړه او د قلا د ديوال يوه لويه حصه ئ ماته کړه. په دې اثنا کښې د دې توپخانې په سپاهيانو او افسرانو باندې غازيانو د خپلو جزائلو داسې صحيح او د نښې ګوله باري وکړه چې د فيرنګيانو دپاره نوره د توپو ګوله باري کول په قلا باندې ډير مشکل شول. بيا انګريزي حمله آور فوځ سمدستي د دې مات ديوال په لاره په قلا باندې وردننه شو. او د محمد شريف په قلعه ئ قبضه وکړه. اينسائن رابان په دې جنګ کښې قتل شو.

اوس فيرنګيانو د شاه باغ نه د غازيانو د ايستلو کوشش شروع کړو مګر د ټولې ورځې د جنګ نه پس هغوي په دې مهم کښې ناکامياب شول او په دې وجه د کمسريټ په قلا باندې قبضه کول هم د هغوي دپاره ناممکن شو. غازيانو ته هم د کمسريټ د قلا اهميت معلوم وۀ. د هغوي دا کوشش وۀ چې په هيڅ طريقه سره چاونۍ ته د خوراک څښناک سامان ونۀ رسي. ميکناټن پد ډير مشکل سره څۀ لږ ډير خوراک په ډير لوے قيمت د بے مارو کلي

نه حاصل کړو. مګر د غازیانو دا کوشش وۀ چې دا ذریعه هم بنده کړي. دیخوا ته کپتان نکول د بالاحصار نه روزانه په ښار باندې ګوله باري کوله. او کوم خلق چې لا په بغاوت کښې شامل نۀ وو هغوي هم په دغه شان د خپل حفاظت او سلامتۍ دپاره په دې جنګ کښې د غازیانو په طرف شامل شول.

هم په پنځم د نومبر لفټیننټ جان کنولي چې په دې ورځو کښې په بالاحصار کښې شاه شجاع سره وسیدو موهن لعل ته یو خط ولیږلو چې قزلباشو ته علاوه د رشوتونو د ورکولو نه دا ووایه چې د یو باغي سردار د سر په عوض کښې به فیرنګیان هغوي له لس زره روپۍ انعام ورکړي او د دې خبرې کوشش هم وکړه چې د شیعه ګانو او سنیانو په منځکښې نفاق پیدا کړې او قزلباش او سنیان په خپله کښې سره وجنګیږي. دا خط مونږ بجنسه دلته کښې نقل کوؤ:

"Tell the Qazilbash chiefs, Sheerin Khan, Naib Sharif, in fact all the chiefs of the Shia persuation,to join against the rebels. You can promise one Lakh of rupee to Khan sheerin on the condition of his killing and seizing the rebels and arming all the Shias, and immediately attacking all rebels. This is the time for the Shias to do good service. Explain to them that, if the Soonees once get the upper hand in the town, they will immediately attack and plunder their part of the town; hold out promises of reward and money; write to me very frequently. Tell the chiefs who are well-disposed, to send respectabls agents to the Envoy. Try and spread amongst the rebels. In everything that you do consult me, and write very often. Mir Hyder Paraja Bashi has been sent to Khan Sheerin, and will see you."

د دې خط په اخر کښې کنولي موهن لعل ته لیکلي دي :

I promise ten thousand rupees for the head of the Principal rebel Chief.

ترجمه : "قزلباشو سردارانو شیرین خان نائب شریف او نورو ټولو د شیعه عقیدې سردارانو ته ووایه چې هغوي د باغیانو مقابلې ته رایوځایے شي. تۀ خان شیرین خان سره د یو لک روپو وعده کولے شے په شرط د دې چې هغه باغیان قتل کړي او وې نیسي او ټولو شیعه ګانو له وسله ورکړي او سمدستي په ټولو باغیانو حمله وکړي. د شیعه ګانو دپاره دا د خدمت کولو موقع ده هغوي ته دا خبره صفا کړه چې کۀ چرې سنیان یو ځل په ښار کښې غلبه حاصله کړي نو هغوي به سمدستي ستاسو په چم باندې حمله وکړي او تالا به ئې کړي هغوي سره د انعام او د روپو اقرارونه وکړه او ماته اکثر خطونه لیکه. کوم سرداران چې مونږ سره روغ دي هغوي ته ووایه چې خپل معتبر سړي سفیر (یعنې میکناټن) له رالیږي. کوشش وکړه چې باغیانو کښې نفاق پیدا کړې. هر څۀ چې کوے نو په هغې کښې زما نه صلاح اخله او هر وخت ماته خط لیکه ما میرحیدر خان پرچه باشي شیرین خان له لیږلے دے او هغه به تا هم وګوري. زۀ د هر لوے باغي سردار په سر د لس زره روپو د ورکولو اقرار کوم."

چونکې جنرل ایلفنسټن لا هم هغه شان ناجوړه وهٔ د دې دپاره بریګیډیر شیلټن چې د هغهٔ نه په دویمه درجه لوړے افسر وهٔ هغه د هغهٔ د امداد دپاره بالاحصار نه چاوڼۍ ته راوغوښتلے شو هغه په نهم نومبر سره د فوځ د یوې دستې او د څهٔ اوړو چاوڼۍ ته راورسیدو د فیرنګیانو د بدې ورځې نه د شیلټن رارسیدلو سره د هغهٔ او د جنرل ایلفنسټن په منځکښې کشمکش پیدا شو. یو خوا ایلفنسټن د سپه سالارۍ اختیارات د لاس نه په هیڅ وجه غورځول نهٔ غوښتل او بل خوا شیلټن د ایلفنسټن د متواتر مداخلت نه ډیر تنګ شو. په دوؤ افسرانو کښې د دې ناچاقۍ په ماتحتو افسرانو او په ټول فوځ کښې ډیر خراب اثر پیدا شو او هیڅ کار هم په تعاون او مصلحت او مشوره باندې نهٔ شو فیصله کیدے. د دې ناچاقۍ او کشمکش وجوهات هم دې دواړو جرنیلانو مختلف طور سره په خپلو خپلو تحریرونو کښې بیان کړي دي.

جنرل ایلفنسټن وائي چې " شیلټن بې ادب او نافرمان وهٔ "ولې شیلټن وائي چې کوم ښهٔ ښهٔ تجویزونه به چې ما د چاوڼۍ د حفاظت دپاره پیش کول نو په هغې کښې به ایلفنسټن دخل ورکولو او هغه به ئې ټول ورانول او ماته دومره هم اختیار نهٔ وهٔ چې یوه توپه مې په یو خاص ځاے لګولے وے. جنرل ایلفنسټن به همیش ماته دا وینا کوله چې " یاد لره کمان زما په لاس کښې دے نه چې ستا." بهر کیف د دې اختلافاتو په وجه انګریزي مفادو ته په دا شان خطرناک وخت کښې سخت نقصان ورسیدو. د بې اتفاقۍ او د مشرانو په منځکښې د کشمکش کومه سزا چې قدرت د هر قام دپاره مقرر کړې ده هغه سزا فیرنګیانو هم په ښهٔ شان سره وخوړله.

د بغاوت د ابتدا نه د بریګیډیر شیلټن دا خیال وهٔ چې د انګریزي فوځ دپاره د کابل په خوا کښې ژمے تیرول ناممکن دي له دې کبله هغهٔ میکناټن او جنرل ایلفنسټن ته دا صلاح ورکړه چې هغوي له جلال اباد ته واپس کیدل پکار دي. خواه دا رائ درست وه یا غلطه مګر هرکله چې دا خبره په چاوڼۍ کښې خوره شوه نو په ټول فوځ کښې یوه سخته کمزوري او بزدلي پیدا شوه. بلکې د هر چا دا خواهش او شوق راوچت شو چې بې ډزه ډوزه او بې مقابلې جلال اباد ته تلل ښهٔ دي. د سپاهي نه چې واخلې نو تر لویه افسره پورې هر چا د دې نه طمع قطعي کړه چې د غازیانو مقابله په کامیابۍ سر انګریزي فوځ کولے شي بالخصوص ګوره فوځ سخت بزدل او کمزور دله شو. او د کار کولو نه ئې پهلو تهي شروع کړه. هغوي دا شان زړهٔ بائللو چې په هره موقع باندې به ئې د جنګ په ځاے د ټولو نه وړومبے د تیښتې کوشش کولو. دیخوا میکناټن د شیلټن د دې رائ نه سخت برخلاف وهٔ په دومره اهمه خبره باندې د دومره لویو افسرانو په منځکښې د اختلاف رائ نتیجه دا شوه چې په ټوله چاوڼۍ کښې سخت پریشان خاطري بې اطمینانۍ او بې چیني راپیدا شوه تر دې پورې چې بوډا ایلفنسټن

نه دوه درې خطا شو اونۀ پوهيدو چې څۀ وکړم.

هر کله چې په انګريزي فوځ کښې جلال اباد ته د واپس کيدو جرګې کيدے او ځاے په ځاے په دې بـانـدې بـحـث کيدو نو په لسم د نومبر قريباً نهۀ بجې سحر د سياه سنګ په غونډۍ باندې بيشماره غلجي غازيان سوارۀ او پياده هم نمر خاتۀ او هم قبلې ته د چاونۍ نه يو. خـوا بـل خـوا راښـکـاره شو په لږ ساعت کښې د نمرخاتۀ غلجو د چاونۍ او د سياه سنګ په مـنـځـکښې چې څومره قلاګانې وے په هغې باندې قبضه وکړه. بالخصوص په يوه قلعه چې د هغې نـوم "رکـاب بـاشي" وه او د ميکناټن د کور د غولي نه په لږه فاصله باندې پرته وه. ډير غازيان راجمع شول او د چاونۍ په قطب نمرخاتۀ طرف ئې سخته ګوله باري شروع کړه. دغه وخـت په چاونۍ کښې صرف د دوؤ ورځو خوراک موجود وۀ او چونکې غازيان د چاونۍ نه چـارچـاپـيـره پـريـوتـل نو په دې وجه فيرنګيانو دا خيال وکړو چې کۀ چرې غازيان د نمرخاتۀ طـرف نـه ونۀ ويستلے شو نو د چاونۍ خلق به د لوږې نه په يو څو ورځو کښې هلاک شي. له دې کبـله هغوي په رکاب باشي قلا باندې د حملې کولو فيصله وکړه. هم په دغه ورځ دولس بجې غرمه د انګريزانو د پيادۇ رسالې او توپخانې يوه زبردسته حمله په دې قلا باندې وکړه. د غـازيـانـو او د انـګريزي فوځ په منځکښې سخته جګړه وشوه او په چپه چپه باندې ئې د يو بل مقابله وکړه. اخر د انګريزي فوځ يوه دسته د قلعې فصيل ته راورسيده. ولې د قلا لويه دروازه تـريـنـه خطا شوه او يوه کړکۍ ئې قلا ته د ننوتو دپاره والوځوله په دې کړکۍ کښې د دوؤ تنو نـه زيـاتي سرې په يو وخت کښې ننو دننه کيدے. له دې کبله انګريزي فوځ د دې کړکۍ په مـخـکښې راجـمـع شو چې په قلا کښې ورننوځي مګر په دې اثنا کښې غازيانو ته دا غلطي د انـګـريـزي فـوځ معلومه شوه هغوي ټول د کړکۍ په خوا کښې راټول شول او دا شان مهلکه ګـولـه بـاري ئې پـه رايوځاے شوي انګريزي فوځ باندې وکړه چې ټول انګريزي فوځ ئې پسپا کـړو مـګـر بيا هـم څـۀ لږ ډير انګريز سپاهيان سره د کرنل ميکرل او لفټيننټ برډ په ابتدا کښې قـلا تـه پـه نـنـوتـو کښې کامياب شوي وو د کړکۍ په خوا کښې لږ بهر کپتان ويسټ مکاټ په ګولۍ ولګيدو او کپتان ميکرے د کړکۍ په خلۀ کښې په تورو قتل شو.

هـم پـه دې سـاعـت کښـې پـه واپس کيدونکې انګريزي فوځ باندې د قلا د ګوټ نه نـاساپې د پښتنو رساله د کړکۍ په خوا کښې راپريوته او په انګريزي فوځ کښې يوه چغه شوه چې رسـالـه راغـلـه. پـه چغو ګوره او نور هندوستاني سپاهيان بالکل مات شول او عين په دې وخـت دښـې د شپږم نمبر پلټنې يو بګلچي په غلطۍ سره د واپسۍ بګل وغږولو هر څومره چې ميجر سکاټ د 44 نمبر پلټنې او نورو افسرانو هم کوشش وکړو چې بيا خپل سپاهيان په قـلـعـه کښـې وردنـنـه کـړي مـګـر سيوا د يو ګوره نه چې د هغۀ نوم ستهورډ وۀ نور ټول فوځ د وړاندې کيدو نه انکار وکړو مګر په دې دوران کښې د چاونۍ د طرف نه په دې قلا بانا ې او

په رساله د لویو توپو گوله باري بدستور روانه وه او د غازیانو ئ ډیر نقصان کولو.

بریگیډیر شیلټن چې دا ټوله تماشه ولیدله نو په ډیره حوصله راوړاندې شو او خپل تښتیدونکي فوځ ته ئ غیرتونه او ننگونه واړول او په ډیر استقلال او دلجمعی سره ئ خپل سپاهیان بیا راټول کړل او بلې حملې ته ئ وروړاندې کړل مگر هغوي بیا د ویرې نه واپس شول. دریم ځل بیا بریگیډیر شیلټن خپل سرې راجمع کړل او په قلا ئ دا شان حمله وکړه چې دا ځل په قلا ورننوتل څۀ وخت چې انگریزي فوځ په وړومبے حمله کښې پسپا شوے وۀ نو کرنل میکرل او لفټیننټ برډ سره د یو څو تنو گوره سپاهیانو په قلا کښې بند پاتې شوي وو. څۀ وخت چې دوئ په قلا کښې ورننوتل نو غازیانو د جنگ په شورش کښې دا گمان وکړو چې گنې دوئ پسې نور هم ډیر فوځ په قلا کښې راروان دے. له دې کبله هغوي د قلا په لویه دروازه وتل شروع کړل مگر څۀ وخت چې هغوي د قلا نه بهر ولیدل چې انگریزي فوځ مات شوے دے او تښتي نو هغوي بیا قلا ته راننوتل. خو کرنل میکرل او لفټیننټ برډ وغیرۀ د قلا دروازه هغوي ته دننه نه زنځیر کړې وه او په کونډۀ کښې ئ سنگین ټومبلے وۀ.

غازیان اوس په ډیر شمار کښې هم په هغه کړکۍ باندې قلا ته راننوتل کومه چې انگریزي فوځ د ځان دپاره جوړه کړې وه او راننوتو سره ئ د لویې دروازې د کونډې نه سنگین وویستو او خپل ملگري ئ په قلا کښې رادننه کړل. راننوتو سره غازیانو کرنل میکرل ټکرې ټکرې کړو لفټیننټ برډ سره د دوۀ سپاهیانو ځان په یو اصطبل کښې پټ کړو او دروازه ئ په ځان پسې پورې کړه نور ټول گوره او هندوستاني سپاهیان قتل شول. وړومبے خو د لفټیننټ برډ غازیانو ته څۀ خبر ونۀ شو او څۀ وخت چې خبر شول نو هغوي په جمع پرې حمله وکړه ولې هغوي لا هم هغه شان برډ سره په جنگ وو چې قلا فیرنگیانو فتح کړه او برډ په دې شان د مرگ نه خلاص شو.

په دې جنگ کښې د فیرنگیانو قریباً دوه سوه سرې مړۀ او زخمیان شول انگریزانو سمدستي د خواو شا په څلورو نورو قلاگانو باندې حمله وکړه او قریباً څوارلس سوه منه غله د هغوي په لاس راغله په دې کښې نیمه غله خو فیرنگیانو چاوڼۍ ته ورسوله مگر باقي نیمه غله غازیانو د شپې وتښتوله. انگریزانو د رکاب باشي او د ذوالفقار په قلاگانو خو مستقله قبضه وکړه او د باقي قلاگانو ئ برجونه وڼړول. په یولسم نومبر کنولي یو بل خط موهن لعل ته ولیکلو:

"..........If Khan Sheerin is not inclined to do service, try other Qazalbash chiefs independently. Exert yourself, write to me often; for the news of the Qassids is not to be depended on. There is a man called Haji Ali, who might be induced by a bribe to try and bring in the heads of one or two of the "mufsids". Endeavour to let him know that 10,000 rupees will be given for each head, or even 15,000 rupees. I have sent to him two or three times."

ترجمه : ”کۀ چرې خان شیرین خدمت کول نۀ غواړي نو نورو قزلباشو سردارانو سره بیلې خبرې وکړه خپل ښۀ وس وکړه ماته زر زر لیکه ځکه چې د قاصدانو په خلۀ اعتبار نشي کیدے یو سړے دے چې د هغۀ نوم حاجي علي دے کۀ چرې په هغۀ باندې وس وشي نو شاید چې هغه په رشوت باندې د یو نیم مفسد سر راوړي. کوشش وکړه چې هغۀ ته معلومه شي چې د هر یو سړي په سر باندې به لس زره روپۍ ورکیدے شي لا پنځلس زره روپۍ . ما هغۀ ته دوه درې ځله سوال جواب لیږلے دے. “

چنانچه موهن لعل د دې خط په تعمیل کښې حاجي علي او آغا محمد سودا ته د دې رقمونو په دې شرط د ادا کولو وعده وکړه چې هغوي د جنګ ازادۍ د دې تحریک په مشرانو کښې څوک قتل کړي. او د هغۀ سر راوړي په دې مشرانو کښې دا وخت عبدالله خان او میرمسجدي نامتو سرداران وو. پس د ټولو نه وړومبے د دوئ د قتلولو دپاره بندوبست وشو عبدالله خان په کابل کښې د غازیانو مشر وۀ او میر مسجدي په کوهستان کښې. دې دواړو زبردست فتوحات په فیرنګیانو باندې حاصل کړي وو په دې سبب د فیرنګیانو دا خیال وۀ چې د دې مشرانو په قتل باندې به د غازیانو ملا او همت مات شي او د ټول تحریک بیخ به وځي.

په دیارلسم د نومبر د قبلې د طرف د غونډو نه ډیر غازیان بیا سره د دوؤ توپو راښکاره شول او په چاونۍ باندې ئې ډیره ښه ګوله باري وکړه له دې کبله په درې بجې د ورځې د انګریزي فوځ یوه دسته د بریګیډیر شیلټن د کمان لاندې په غازیانو باندې د حملې کولو دپاره تیاره شوه. په دغه ورځ بیا د انګریزانو او غازیانو په منځکښې سخته جګړه وشوه. او میجر تهین پکښې په ګسه اوږه باندې زخمي شو انګریزي فوځ په دې جنګ کښې ښه بهادري وښودله او اګر چې د غازیانو ګوله باري په نسبت د ګوره فوځ ډیره مهلکه او بااثره وه مګر بیا هم انګریزي فوځ د خپلو توپو په زور د دې غونډو په اخستلو او د غازیانو نه د دواړو توپو په قبضه کولو کښې کامیاب شو. ولې سره د دې کامیابۍ د انګریزانو دپاره د دې دواړو توپو چاونۍ ته راوړل د غازیانو د سختې حملې په سبب یو ډیر مشکل کار وۀ. دا دواړه توپې د غازیانو نه د غونډو په پریښودو کښې پاتې شوے وے .ولې څۀ وخت چې میجر سکاټ د 44 نمبر پلټنې ګوره سپاهیانو ته د یوې توپې د راښکلو دپاره حکم وکړو نو غازیانو دا شان درسته او په ښه ډزې په هغوي شروع کړې چې دې سپاهیانو توپې ته د ورنزدې کیدو نه انکار وکړو. هر کله چې ګوره سپاهیانو د دې حکم د تعمیل نه انکار وکړو نو هندوستاني سپاهیان هم د وړاندې کیدو نه واپس شول. په دې منځکښې ماښام تیارۀ شوه او انګریزي فوځ اوس واپس چاونۍ ته تلل غوښتل عین په دغه وخت کښې غازیان په ډیر جوش و خروش سره په واپس راتلونکي انګریزي فوځ باندې رامات شول. او د چاونۍ تر خلې

پورې ئ د هغوي تعاقب وکړو. په دې جنګ کښې يو شلور پاؤنډر د انګريزانو لاس له راغله ولې بله شپږ پاونډر ترينه د 44 نمبر پلټنې ګوره فوځ د بزدلی په سبب په کار کښې پاتې شوه. په دې کښې لفټيننټ ايري ميخ ورټک وهلو او د کار نه ئ وويستله.

لفټيننټ ايري چې بيا وروستو ميجر جنرل سر ونسنټ ايري شو پخپل کتاب " The Military Operations at Kabul " کښې د غازيانو د نشانه بازی او د ښې نښې ويشتو تعريف په صفحه 80 باندې دا شان کوي :

"Our infantry soldiers, both European and Native, might have taken a salutary lesson from the Afghans in the use of their firearms; the latter invariably taking steady deliberate aim and seldom, throwing away a single shot; whereas our men seem to fire entirely at random, without any aim at all; hence the impunity with which the Afghan horsemen braved the discharge of our musketry in this day's action within twelve yards, not one shot, to all appearance, taking effect."

ترجمه : "زمونږ د پلټنې سپاهيانو هم ګوروؤ له او هم هندوستانيانو له پکار وو چې د پښتنو نه ئ د خپلو ټوپکو په استعمال کښې يو ښۀ سبق اخستے وے. پښتنو به هميش ښۀ په قلاره او په نښه باندې شيش لګولو او هيچرې به ئ هم بې فائدې ډز نۀ کولو ولې زمونږ سړي دا شان معلوميدل لکه چې هسې بې مطلبه او بالکل بې نښې ډزې کوي هم دغه وجه وه چې د دې ورځې په جګړه کښې د پښتنو سوارۀ زمونږ د ټوپکونو خلو ته په دولس ګزه کښې دننه راوړاندې شول او په ظاهره باندې يوه ګولی هم په هغوي باندې ونۀ لګيده.

## باب

په کوهستان کښې هم معاملات د کابل په نسبت د فيرنګيانو دپاره څۀ زيات اميد افزا نۀ وو. ميرمسجدي چې په دريم اکتوبر 1840ء کښې د هغۀ قلعه د لوټ او د اقرار نه برخلاف جنرل سيل ورانه کړې وه او هغه بيا نجراؤ ته شړونے شوے وۀ په دې ورځو کښې هغۀ ته د خپل بدل اخستو دپاره ښه موقع په لاس ورغله. او يو عظيم الشان لښکر ئ د دې غرض دپاره راجمع کړو چې فيرنګيان د خپل ملک نه وباسو او ځان د هغوي د غلامی نه ازاد کړو. د نجراؤ ډير خانان په دې تحريک کښې د هغۀ سره شامل شو.

ميجر پوټنګر سي بي د کوهستان په علاقه کښې پوليټيکل ايجنټ وۀ د نجراؤ په دې خانانو کښې چې کوم کسان مير مسجدي سره همراز وۀ. هغوي ميجر پوټنګر ته په دريم د نومبر د غرمې په وخت راغلل او هغۀ سره ئ په دې علاقه کښې د امن و امان قائمولو په بهانه جرګه شروع کړه. ميجر پوټنګر په دلې ورځو کښې په لغمان کښې وسيدو او دا خانان هغۀ خپلې قلعې ته راوبلل. څۀ وخت چې دې خلقو سره ميجر پوټنګر خبرې وکړې نو د هغې نه

پس هغه سره د دې خانانو د خپلې قلعې باغ ته د قبائلو د نورو ملکانو سره د جرګې کولو په نیت باندې راووتلو. لفټیننټ چارلس ریټړے چې د میجر پوټنګر اسسټنټ وُه هم په دې جرګه کښې شامل وُه. د خبرو اترو په دوران کښې څهٔ وخت چې د ماجبونو په سوال باندې بحث شروع شو نو د کوهستان خانانو هغهٔ ته ووئیل چې مونږ ته خو ستا شرطونه منظور دي ولې په دې معامله کښې د قام نورو خلقو سره هم جرګه کول پکار دي. د دې غرض دپاره لفټیننټ ریټړے دې خانانو سره بهر پټو ته د قام خلقو سره د جرګې کولو په نیت روان شو. په دې جرګه کښې ناساپه د اولس خلقو هغه په ټوپک وویشتو. میجر پوټنګر دغه وخت یو څو خانانو سره لا هم هغه شان په باغ کښې ناست وُه چې د ډزو اواز هغهٔ او د کوهستان خانانو واوریدو. خانان خو وتښتیدل او میجر پوټنګر په قلعه کښې پناه واخسته. د اولس خلقو د حاضر باشو کیمپ چې د میجر پوټنګر د حفاظت دپاره په هغه ځاے کښې موجود وُه ټول لوټ کړو.

د میجر پوټنګر ګارډ سمدستي د دې واقعاتو په لیدو سره په دې خلقو باندې ډزې شروع کړې. غازیان د میدان نه خو خوارهٔ شو مګر چارچاپیره په ولو او په خوړونو کښې ئې مورچې ولګولے او په ګارډ باندې ئې ډیرې ډزې وکړې. په دې کښې لفټیننټ هاوټن چې د ګورکه رجمټې ایډجوټنټ او په چاریکار کښې سره د خپله فوځه وسیدلو، راورسیدلو. او غازیان ئې د مورچو نه وویستل. کپتان کاډرینګټن چې د رجمټې کمان افسر وُه هغه دا وخت اتفاقاً په لغمان کښې موجود وُه. د هاوټن په رارسیدو سره هغه د فوځ د یوې دستې سره په غازیانو باندې بله حمله وکړه. او سخته جګړه په دواړو طرفو کښې وشوه. کپتان کاډرینګټن د یوې ولې غاړه د قلعه د تالاؤ ډکولو دپاره راپریکړه اوس ماښام نزدې شوے وُه. او غازیان د خواوشا په غرونو باندې دا شان پریوتل چې د چاریکار لاره ئې بالکل بنده کړه. چاریکار د لغمان نه قریباً درې میله دے. کپتان کاډرینګټن د دې کبله د میجر پوټنګر پارټې ته سل تنه نور امدادي فوځ پریښودو او پخپله چاریکار ته روان شو.

په څلورم د نومبر سحر وختي کپتان کاډرینګټن د میجر پوټنګر د امداد دپاره څلور نورې کمپنۍ او یوه توپه راواستوله. غازیانو بیا په دې فوځ باندې سره د پیادؤ او رسالې حمله وکړه او اګر چې غازیان په ابتدا کښې تر څهٔ حده پورې وروستو شول مګر ګورکه سپاهیان د فتح په جوش کښې دومره وړاندې په غازیانو پسې د خپل فوځ نه جدا شول چې د هغوي او د اصلي فوځ په منځکښې ډیر تفاوت پیدا شو. غازیانو فوراً د هغوي د دې غلطۍ نه فائده واخسته او په ګورکوؤ باندې ئې حمله وکړه او بیا ډیر زورور جنګ ونښتو. انګریزي فوځ بغیر د خپل مقصد د حاصلولو نه چاریکار ته واپس لاړو او لغمان ته را ونهٔ رسیدے شو. کهٔ چرې لفټیننټ هاؤټن او اینسائن سالسبري د ډیرې حوصلې او زړورتیا نه کار نهٔ وے اخستے

نو په دې جګړه کښې به د فيرنګيانو ټول هندوستاني فوځ تباه شوے وۀ.

اينسائن سالسبري په دې جنګ کښې مړ شو اوس د ميجر پوټنګر د چاريکار نه د امداد حاصلولو طمع قطعي شوه. پس هغۀ دا اراده وکړه چې د تيارۍ نه پس زۀ هم چاريکار ته واپس لاړ شم. په دې اثنا کښې غازيانو په چاريکار او لغمان دواړو باندې د نوي سر نه حمله شروع کړه. او د ميجر پوټنګر د قلعه نه چارچاپيره په ډيرو مضبوطو مقاماتو ئې قبضه وکړه. هرکله چې د شپې تيارۀ شوه نو ميجر پوټنګر خپل ټول ګورکه سپاهيان په دې بهانه راجمع کړل چې غازيانو باندې حمله کوو او چاريکار ته د تلو اراده هغۀ د ټول فوځ نه پټه کړه. په دې سبب غازيان د هغۀ د دې ارادې نه بالکل بې خبره پاتې شول او هغه په خاموشۍ کښې د غرۀ په خوا خوا کښې چاريکار ته بالکل محفوظ ورسيدو او غازيان پرې بالکل خبر نۀ شو.

په لغمان کښې د هغۀ نه دوه زره روپۍ، شپيتۀ جزائل، تمام د دفتر کاغذات او څۀ اسونه او ذاتي مال و اسباب پاتې شو. کوم پښتانۀ چې د ريټرے په ملازمت کښې وو هغوي ټول غازيانو سره شامل شو. په پنځم نومبر سحر قريباً اووۀ بجې بيشماره ډير غازيان د چاريکار نه راچاپيره شول او په فيرنګيانو باندې ئې حمله وکړه. هغوي د دوۀ ورځو پرله پسې فتوحاتو په وجه ښۀ زړور شوي وو انګريزي فوځ هم د خپلو بارکونو نه په دې غازيانو باندې د حملې کولو دپاره راووتل او ميجر پوټنګر د توپخانې کمان واخستو. د لږ ساعت د جنګ نه پس ميجر پوټنګر په ښنه باندې ژوبل شو او د هغۀ فوځ هم مات شو. غازيانو د هغوي تعاقب وکړو او عين تر بارکونو پورې راورسيدل. دلته بيا سخته جګړه وشوه او غازيانو ګورکه پلټن د خپلو خپلو پوسټونو نه ووېستل. په دې جګړه کښې کپتان کاډرينګټن هم مړ شو. د هغۀ نه پس د فوځ کمان هاؤټن واخستو او هغۀ بيا خپل خوارۀ وارۀ سپاهيان راجمع کړل او ښۀ په بهادرۍ باندې ئې په غازيانو باندې بيا حمله وکړه. غازيان د نزدې نزدې مقاماتو نه راووتل او بيا د فيرنګيانو نه لږ لرې لرې په دا شان پريوتل چې د هغوي د اوبو د راوړلو لار ئې بالکل بنده کړه. په لږ وخت کښې سړي او څاروي دواړه د تندې د لاسه سخت تنګ شو او په خندقونو کښې ئې د چپړو په اوبو باندې ګزاره شروع کړه.

په شپږم نومبر غازيانو بيا د چاريکار په چاونۍ باندې داسې په جوش او سختۍ حمله وکړه چې د فيرنګيانو په لاس کښې تش د سپاهيانو بارکونه پاتې شول. او په نوره ټوله چاونۍ باندې غازيانو قبضه وکړه.

په اووم تاريخ باندې غازيان د خواجه مير په قلعه باندې قابضان شول دا قلعه د بارکونو د پاسه سوره وه او د هغې په تلو باندې فيرنګيانو ته سخت نقصان او تکليف ورسيدو. په لسم تاريخ باندې انګريزي فوځ په قلعه کښې د اوبو اخري ذخيره وويشله او بل يو ګوټ اوبۀ هم پاتې نۀ شوې. په يوولسم تاريخ باندې ټول سپاهيان او افسران د تندې د

لاسه سخت بې قراره شول او اخر په دولسم تاريخ باندې هاوټن د سپاهيانو يوه دسته د اوبو راوړلو دپاره بهر وليږله. ولې څهٔ وخت چې دا دسته اوبو ته رانزدې شوه نو د ډيرې تندې په سبب سپاهيان په اوبو باندې بې ترتيبه شکل کښې ورپريوتل او په دې کښې غازيانو په هغوي باندې ډزې شروع کړې او دا شان پـه نښـه نښه ئې وويشتل چې دوئ د اوبو راوړو نه بغير وتښتيدل.

د دې نه پس بيا هم په دې شپه دوه کمپنۍ د اينسائن روز لاندې د اوبو راوړو دپاره د بارکونو نه ووتلے دا دواړه کمپنۍ د اوبو په تلاش کښې د يو بل نه جدا شوې او د روز خپله کمپني عين د غازيانو پـه يو پوسټ باندې ورغله. دا د پوسټ غازيان ډير لږ وو نو د روز سپاهيانو هغوي ټول قتل کړل ولې په خپله د بدل د ويرې نه دا شان هيبت واخستل چې د اوبو راوړو نه بغير خپلو بارکونو ته واپس راوتښتيدل. او روز ئې په ځاے پريښودو. لږ ساعت پس روز ځان سره څهٔ لږې شان اوبهٔ راوړې. اوس هاوټن ميجر پوټنګر ته ووئيل چې سپاهيانو ټولو د جنګ کولو نه زړهٔ بائللے دے تنظيم او ضبط په فوځ کښې يک قلم ورک شو او د حکم منل د بزدلۍ او د کمزورۍ په سبب د هغوي نه بالکل هير شوي دي. او چونکې د سپاهيانو نه ډير خلق مړهٔ او ژوبل شوي دي او هغوي سره د خوراک څښاک سامان هم په ختميدو دے له دې کبله د افسرانو دپاره د سپاهيانو په قابو کښې ساتل ناممکن شوي دي. پس هاوټن، پوټنګر ته دا مشوره ورکړه چې چاريکار سمدستي پريښودل او کابل ته تښتيدل پکار دي. څهٔ ورځې شوے وے چې پوټنګر کابل ته هم د امداد دپاره يو خط ليکلے وهٔ ولې څهٔ وخت چې د هغې هم څهٔ جواب رانغلو نو د هغې طرف نه هم د امداد راتلو نه هغهٔ طمع قطعي کړه. پس لاچار پوټنګر کابل ته د واپس تللو فيصله وکړه خو مشکله دا وه چې کابل ته تلل هم د هر قسم خطراتو نه ډک وو. اکثر سپاهيانو او هندوستاني افسرانو سره بال بچ وهٔ او د افغانستان د ژمي په واؤرو کښې د دومره زبردست دشمن په مقابله کښې د هغوي دپاره ژوندي تښتيدل ناممکن وو ولې دلته په چاريکار کښې هم د هغوي دپاره يوه بله ورځ تيرول هم ډير سخت وو. اخر پوټنګر او هاوټن دا تجويز وکړو چې کابل ته ضرور تښتو ولې د فوځ نه دا تجويز خفيه ساتل پکار دي. په دې شان هغوي په چاريکار کښې تر ديارلسم تاريخ پورې پاتې شول. چونکې سپاهيانو ته د خپل مستقبل هيڅ پته نهٔ وه او ملک چارچاپيره بلوه وهٔ. له دې کبله په دې ورځ د پنجابيانو د توپخانې سپاهيان تنګ شول او د فوځ نه وتښتيدل او نورو ته ئې هم د تيښتې ترغيب ورکړو. په دې کښې هاؤټن چې خبر شو نو راغے او هغې پنجابيانو ته ئې د نيولو په غرض لاس ورواچولو چې چا د تښتيدو نيت کړے وهٔ مګر سمدستي هم د هغې توپخانې يو جمعدار چې پنجابے مسلمان وهٔ د يو سړي نه توره واخسته او په هاؤټن ئې ګوزار وکړو. هاؤټن په زمکه راپريوتو او قبل د دې نه چې ګورکه

سپاهیانو څهٔ لاس پښې خوځولے وے د توپخانې او د پلټنې ټول مسلمانان سپاهیان د بارکونو نه راووتل او د قلعه په دروازه باندې رابهر شول. په دې باندې په فوځ کښې نور هم اړے ګړے پیدا شو او اګرچې څهٔ سپاهیان د خپلې وفادارۍ او عقیدت ښکاره کولو په غرض د ډاکټر ګرانټ نه د هغهٔ د حفاظت دپاره راچاپیره شول مګر د فوځ یوې لویې حصې د کپتان کاډرینګټن متوفيٰ کور او خزانه سمدستي لوټ کړل او د هغهٔ بکسونه ئې مات کړل او مال ئې ترینه وویستلو.

دیخوا ډاکټر ګرانټ د هاؤټن نه ښے لاس پریکړو او د هغهٔ نور زخمونه ئې چې د هغهٔ په ګس لاس او په څټ باندې لګیدلي وو وتړل. هم په دغه ورځ ماښام ډاکټر ګرانټ په ټولو توپو کښې میخونه ټک وهل او ټول باقیمانده فوځ په دروازې باندې د چاونۍ نه ووتلو. میجر پوټنګر د فوځ په مخکښې روان شو او چونکې هاؤټن په مشکله ځان په اس باندې ټینګولے شو نو ډاکټر ګرانټ اصلي فوځ سره شامل شو او اینسائن روز د ریر Rear یعنې د شا د فوځ کمان واخستو.

د انګریزي فوځ مشکلاتو د چاریکار نه د روانیدو نه پس ډیر خطرناک صورت اختیار کړو د ښځو او د بچو په موجودګۍ کښې د فوځ بې قاعدګي او بدنظمي د حد نه زیاته خرابه شوه. قدرتي طور هر چا سره د خپل بال بچ او د خپل ذاتي اسباب ډیر فکر وهٔ او په دغه وجه د فوځ نه تنظیم بالکل ورک شو. په دې اړې ګړې کښې ډاکټر ګرانټ ناساپې غیب شو او بیا هیچرې چا ونهٔ لیدو. د ډیر کوشش نه پس څهٔ لږ ډیر انتظام قائم شو نو دا فوځ سنجید درې ته راورسیدو. په دغه ځاے کښې د اوبو د بیاموندو څهٔ امید وهٔ مګر هرکله چې هغوي د اوبو ورومبۍ ولې ته ورسیدل نو دا ټول فوځ د اوبو په تلوسه کښې بالکل بې قابو شو میجر پوټنګر د ډیر انتظار نه پس د فوځ بیل بیل ټولے را یوځاے کړو او د کلو نه ئې بهر په بهر روان کړو. دوئ لا ډیرې فاصلې پورې نهٔ وو تللي چې میجر پوټنګر د خپل زخم په وجه ډیر ستړے شو. او دا فیصله ئې وکړه چې هغه په خپله او کپتان هاؤټن کابل طرف ته د فوځ نه جدا وتښتي. باقي ټول فوځ هغوي د خداے اسرې ته پریښودو او دا دواړه په خپله ترینه په بله لار باندې سره د یو سپاهي، یو منشي او د پلټنې د بنیا د غرونو په لاره باندې کابل ته روان شول. باقیمانده فوځ باندې غازیانو حمله وکړه او یو زنده سر ترینه پاتې نهٔ شو.

میجر پوټنګر او کپتان هاؤټن په ترکمان اسونو باندې سوارهٔ د خپلو پیادوملګرو سره ډیر په تکلیف او په سختو د یو ځاے نه بل ځاے ته پټیدل او د کابل په طرف نزدې کیدل. دیخوا کابل ته غازیانو له د میجر پوټنګر د چاریکار نه د تیښتې خبر راغے چنانچه هغوي غلام معین الدین سره د ډیرو سړو د هغهٔ د ګرفتارۍ دپاره د چاریکار او د کابل په منځکښې غرونو ته واستول. مګر د خوش قسمتۍ نه هغوي د یو بل مخې له ورنهٔ رغلل او دغه

شان میجر پوټنګر دوئ د علي فات میدان ته راورسیدل. د کابل په خوا کښې د هغوي نه لار خطا شوه او د چاونۍ په ځای په دیهه افغان باندې راوختل په دې ځای کښې د غازیانو د یو څو ځوکو نه په هغوي باندې اوازونه وشو مګر د پښتنو د رسالې د سپاهیانو په شان هغوي د هغې جوابونه ورکول او دغه شان د هغوي نه هم تیر شول. دغه وخت د شپې درې بجې وې او چونکې هغوي ټولو د پښتنو جامې اغوستې وې د هغوي شناخت په تیارۍ کښې ناممکن وۀ په دې سبب هغوي د خوش قسمتۍ نه صحیح سلامت د کابل بازار په ټولو کوڅو کښې بې روکه ټوکه راتیر شول.

اګرچې د چاونۍ او د کابل د ښار په منځکښې هم د غازیانو یو پکټ لګیدلے وۀ او هم د دې پکټ په خوا کښې چاونۍ ته لار تللے وه مګر چونکې پښتانۀ سپاهیان د سحر په وخت کښې په څوکۍ کښې غافله وو له دې کبله هغوي د پکټ نه هم په خیر خیریت سره راتیر شول. مګر د هغوي د تیریدو نه پس سمدستي د غازیانو نه دوه تنه په منډه راخلاص شول او اګرچې دې دواړو په میجر پوټنګر دوئ یو باړ وچلولو مګر دوئ خطا شول او صحیح سلامت چاونۍ ته راورسیدل.

باب

د دیارلسم نومبر د جنګ نه پس غازیانو څۀ قابل ذکر حمله په چاونۍ باندې تر ډیرو ورځو پورې ونۀ کړه. مګر د چاونۍ د حفاظت په سلسله کښې د انګریزي فوځ په سپاهیانو باندې دومره ډیر کار په ذمه شوے وۀ چې هر سپاهي به کله څلیریشت او کله دیرش ګینټې متواتر ډیوټي ورکوله. په دا رنګ د سپاهیانو صحت او صبر په یو څو ورځو کښې بالکل تمام شو او هر څومره چې ژمے راوړاندې کیدو او د واڼرو د پړیوتو موده رانزدې کیده هغه هومره د سپاهیانو بزدلي او کم همتي زیاتیدله. هر کله چې افسرانو ته د دې خبرې علم وشو نو په هغوي کښې څنو څنو دا تجویز وکړو چې چاونۍ پریښودل او په بالاحصار کښې خپل فوځ دیره کول پکار دي. میکناټن د دې تجویز د ابتدا نه په حق کښې وۀ ولې فوځیانو د دې مخالفت وکړو. د هغوي لوے لوے اعتراضات دا وو چې اول : د زخمیانو او د بیمارانو بالاحصار ته د جنګ په وخت کښې منتقل کول ډیر مشکل کار دے. دویم : دا چې په بالاحصار کښې د سوزولو لرګي نشته. دریم : د څاروؤ دپاره واښۀ نشته. څلورم : د چاونۍ په پریښودو به دشمن زړور شي او پنځم : دا چې ممکن ده چې په لاره باندې انګریزي فوځ د غازیانو د لاسه شکست وخوري. د دې ټولو خبرو جواب میکناټن وکړو مګر د ډیر بحث مباحثې نه پس بالاخر ټول په دې متفق شول چې بالاحصار ته تلل مناسب نۀ دي. دې کښې

شک نشته چې کۀ چرې انګریزي فوځ د چاوڼۍ نه بالاحصار ته تللے وے نو ممکن وه چې هغوي ډیرې مودې پورې د غازیانو مقابله کړې وے او تر نورې ډیرې عرصې پورې د افغانستان ازاد ملک ته د هغوي د لاسه د غلامۍ طوق ور په غاړه شوے وے مګر د خدائے تعالیٰ دارضا وه چې د پښتنو قوم له یوځل بیا د اصلاح او د ژوندي پاتې کیدو موقع په لاس ورکړي. له دې کبله د هغې خلقو شمار زیات شو چې څوک په چاوڼۍ کښې د پاتې کیدو په حق کښې وو او بالاحصار ته د تلو تجویز مسترد شو.

په اتلسم نومبر د جلال اباد نه د کابل فیرنګیانو ته خبر راغے چې د جنرل سیل دپاره دا ناممکنه ده چې هغه په موجوده حالاتو او واقعاتو کښې د جلال اباد نه کابل ته د فیرنګیانو د امداد دپاره راشي. په کومه ورځ چې کابل کښې بغاوت شروع شو نو د جنرل سیل بریګیډ په ګندمک کښې دیره وۀ. هرکله چې په دویم د نومبر د کابل د بغاوت ابتدا وشوه نو جنرل ایلفنسټن جنرل سیل ته حکم ولیږلو چې تۀ سره د خپل فوځه سمدستي کابل ته راشه. هرکله چې دا حکم هغۀ ته راورسیدو نو هغه بیا جلال اباد ته رارسیدلے وۀ پس هغه د خپلو افسرانو یو جنګي جرګه راوبلله په دې جرګه کښې دا متفقه فیصله وشوه چې د افغانستان د هغې وخت د واقعاتو په مطابق د جنرل ایلفنسټن دا حکم ناقابل عمل دے. څۀ وخت چې د جنرل سیل دا جواب د کابل چاوڼۍ ته راورسیدو نو د هغوي د مایوسۍ څۀ حد پاتې نۀ شو. مګر چونکې هغوي قندهار ته هم د کومک دپاره د هغه ځائے کمانډنګ افسر ته لیکلي وو نو اوس هغوي د هغې فوځ د راتلو په انتظار کښې کښیناستل.

جنرل سیل چې په ګندمک کښې د کابل د انقلاب نه خبر شو نو هغۀ سمدستي په جلال اباد باندې د پریوتلو قصد وکړو د ګندمک نه هغه ډیر په مشکله او تکلیف سره جلال اباد ته راورسیدو. ځکه چې د انقلاب اور چارچاپیره لګیدلے وۀ او په هر ځائے کښې چې د اولس د خلقو وس رسیدو نو په انګریزي فوځ باندې به ئې حملې کولے. د جلال اباد خلقو د هغۀ هیڅ مقابله ونۀ کړه او هغه بې مقابلې ښار ته دننه رانوتلو. هغۀ بیا ټوله ابادي د ښار نه بهر وویستله او یواځې فوځ ئې په ښار کښې پریښودو. جنرل سیل سره دغه وخت صرف د دوۀ ورځو خوراک وۀ مګر هغۀ د ښار د باشنده ګانو نه څومره غله چې اخستې شوه واخسته مګر دا هم د هغۀ د ضروریاتو دپاره بالکل ناکافي وه. خو اتفاقاً یوې قافلې ډیره غله د انګریزي فوځ دپاره راورسوله او دغه شان جنرل سیل ته د رسد سامان په کافي مقدار کښې په لاس راغے.

میکناټن د قندهار کمان افسر لفټیننټ کرنل میکلارن ته هم چې په قندهار کښې د یو بریګیډ فوځ سره پروت وۀ د کابل د امداد دپاره لیکلي وو چنانچه کرنل مذکور سره د خپل فوځ تر غزنې پورې راغلو ولې لا هغه په لاره کښې وۀ چې دومره سختې واورې وورېدلے او په قندهار او قلات غلزي کښې هم دا شان بغاوتونه وشول چې کرنل میکلارن

مجبوراً قندهار ته واپس شو. او په قلات غلزي کښې ئ د فوځ څۀ حصه پریښود ه. هم په دې شان غزني ته د کومک دپاره حکم استولے شوے وۀ چنانچه کپتان وډبرن د شپږ نیمو شلو سړو سره د غزني نه کابل طرف ته روان شو. ولې دې هم لا هغسې په لاره وۀ چې غازیانو په هغۀ باندې هم سخته حمله وکړه. او هغۀ خپل ځان په یو وران ځاے کښې چې د هغې دیوالونه مات ګوډ وو پټ کړو. په دې ځاے کښې هغۀ قریباً څلور پنځو زرو غازیانو قلعه بند کړو د یو څو ورځو د مقابلې نه هغه تنګ شو او په غازیانو باندې ئ د خپل ځان د خلاصي دپاره حمله وکړه ولې کپتان وډبرن سره د ټولو ملګرو په جنګ کښې قتل شو. هم په دې طریقه د فوځ یوه بله دسته د غزني نه د کابل په طرف روانه شوې وه. ولې هغه هم د عام بغاوت په سبب غزني ته واپس شوه. خو دا دسته هم د پنځو کسانو نه سوا ټوله قتل شوه. یو بل انګریزي افسر کپتان فیرس سره د دوه نیمو سوؤ سپاهیانو په یو قلعه کښې بند شو اګر چې یو څو ورځو پورې هغۀ په ډیرې بهادرۍ د غازیانو مقابله وکړه مګر څۀ وخت چې هغۀ سره کارتوسونه په خلاصیدو شو نو هغۀ د چارچاپیره غازیانو نه د وتو قصد وکړو. کپتان فیرس سره د هغۀ ښځه او خینې هم وه. فیرس هغوي دواړه دوؤ سورو پسې وتړلې او د خپلو سپاهیانو د دستو په منځکښې ئ هغوي د غازیانو د صفونو نه وویستلے. دا سپاهیان څۀ خو قتل شول او باقیماندۀ خپل ځانونه پیښور ته په ډیر تکلیف او مصیبت راورسول. مګر د کابل فیرنګیان د دې واقعاتو نه لا په تفصیل سره خبر نۀ وو او لا هم هغه شان د قندهار د فوځ په طمع کښې وو.

هر کله چې انګریزي فوځ مقیم کابل د هر طرف نه د امداد د رارسیدو نه مایوس شو نو په خپله په خپل زور ئ ځان تر مخکښې سپرلي پورې د غازیانو مقابلې ته تیار کړو. د هغوي دا کوشش وۀ چې په هره طریقه چې وي دا ژمے غازیانو سره په مقابله او مدافعت کښې تیرول پکار دي او چې څۀ وخت سپرلے راشي او لارې ازادې شي نو بیا به د هندوستان نه د هغوي د امداد دپاره کافي فوځونه او سامان راورسي نو هغوي به په چارچاپیره ملک بیا قبضه وکړي اوغازیان به ټول تباه او ورک کړي.

د جنګ ازادۍ مشرانو هم دا انقلاب ارادتاً داسې وخت شروع کړے وۀ چې انګریزي فوځ ته د ژمي او د واؤرو په وجه د هندوستان نه د کومک رارسیدل ناممکن وو پس د هغوي ټول کوشش هم د دې دپاره وۀ چې په هر شان چې وي چې د انقلاب مکمله خاتمه هم په ژمي کښې وشي او د سپرلي د رارسیدو نه وړومبے وړومبے ملک ټول د فیرنګیانو نه ازاد شي او قومي حکومت ښۀ مستحکم طور باندې قائم شي. پس په دواړو فریقو کښې د وخت او د مهلت دپاره مقابله شروع شوه. فیرنګیانو غوښتل چې جنګ دا شان ورو ورو وړد شوې چې په څۀ شان ژمے تیر شوے او سپرلے راشي او د غازیانو دا منشا وه چې

جنګ لنډ شي او د سپرلي نه وړومبے ملک ازاد شي.

بي مارو نومے يو کلے د انګريزي چاوڼۍ نه قريباً نيم ميل قطب ته د کوهستان په لاره پروت دے د دې کلي نه قبله په سهيل يو څو وچتې وچتې غونډۍ وے او کلے په خپله د غونډو په ويخ کښې پروت وۀ. خو څۀ کورونه د دې غونډو په ښکته جبو باندې دومره وچت پراتۀ وو چې د ميکناټن او د هغۀ د فوځونو د افسرانو د کورونو يوه حصه د هغې کورونو نه د ټوپکو د زد لاندې وه. په اول اول کښې به ميکناټن د دې کلي مشرانو او نورو مالکانو له ډير لوي لوي قيمتونه ورکول او د هغوي نه به ئ غله د فوځ دپاره اخستله. غازيانو ته چې دا معلومه شوه نو هغوي په دې کلي باندې قبضه وکړه او په ډير شمار کښې ئ په چارچاپيره غونډو باندې ډيرې ولګولے. انګريزان قدرتاً په دې سخت تنګ شول نۀ صرف دا چې ميکناټن نه د غلې اخستلو يوه لويه ذريعه د لاس نه ووتله بلکې د هغۀ خپل کور او د چاوڼۍ يوه حصه هم د غازيانو د جزائلو د زد لاندې راغله. او غازيانو له ښې ښې قدرتي مورچې هم په ګوتو ورغلے. پس ميکناټن دا درخواست جنرل ايلفنسټن ته وکړو چې بي مارو په کلي باندې دې حمله وشي چې غازيان د کلي نه او د غونډو نه بې دخله شي. چنانچه په دويشتم نومبر باندې د بي مارو په کلي د فوځ يوې دستې د ميجر سوين د کمان لاندې پيشقدمي شروع کړه. دا دسته لا دې کلي ته نۀ وه رسيدلے چې د کوهستاني غازيانو يو لوے ټولے د غونډو نه راکوز شو او په ډير شمار کښې ئ په کلي کښې مورچې ونيولے اګرچې ميجر سوين ته دا حکم شوے وۀ چې د بي مارو په کلي دې فوراً چپاؤ وشي او قبضه دې شي. مګر هر کله چې ميجر سوين وليدل چې د هغۀ د دستې د سپاهيانو په مقابله کښې د غازيانو شمار ډير دے نو هغه نۀ خو په کلي ور وړاندې کيدو او نۀ واپس کيدو بلکې د لرې نه ئ په غازيانو باندې د ټوپکو او د توپې ګوله باري شروع کړه. د دې دستې سره صرف يوه توپه د لفټيننټ ايري د لاندې وه په دې شان فريقينو پنځۀ شپږ ګينټې په يو بل باندې د لرې لرې نه ډزې وکړې مګر هيڅ څۀ زيات نقصان ئ يو بل ته ونۀ رسولو. قريباً ماښام د غازيانو يوه رساله د بي مارو کلي د شا نه راووته او د انګريزي فوځ شا ته ئ په يوې قلعه باندې قبضه وکړه او د هغه ځاے نه ئ په انګريزي فوځ باندې ډزې شروع کړې.

دغه شان د ميجر سوين دسته هم د مخې نه او هم د وروستو نه په ډزو کښې راګيره شوه دغه وخت بريګيډير شيلټن هم د ميجر سوين امداد ته سره د څۀ فوځه د کرنل آيور د کمان لاندې راورسيدو او لفټيننټ ايري په خپله توپه د غازيانو په دې رساله باندې ګوله باري شروع کړه مګر لفټيننټ ايري په لاس باندې زخمي شو. انګريزي فوځ څۀ ساعت پس بغير د خپل مقصد د حاصلولو نه واپس چاوڼۍ ته لاړو.

په څلورم د نومبر سرداران کابل را يو ځاے شول او زمان خان ئ چې د نواب اسدالله

خان زوی وۀ او د امیر دوست محمد خان ورارۀ وۀ په طور د بادشاه منتخب کړو. په دویشتم نومبر د شپې انګریزي افسرانو یوه بله جنګي جرګه وکړه او په هغې کښې ئې دا فیصله وکړه چې د بي مارو په کلي باندې قبضه کول د انګریزي فوځ د خوراک او رسد دپاره نهایت ضروري دي. ځکه چې کۀ غازیان د دې کلي په قابو کولو کښې کامیاب شول نو انګریزي فوځ به د لوږې نه ډیر زر هلاک شي پس د میکناټن په وینا دا فیصله وشوه چې سبا سحر وختي دې بریګیډیر شیلټن پخپله د فوځ کمان واخلي او د بي مارو په کلي او د هغې په خواوشا غونډو باندې دې په هر شان چې وي قبضه وکړي پس دوه بجې د شپې مفصله ذیل فوځ د چاوڼۍ نه د شپې په تیارۀ کښې په چپه چپیا کښې په کوهستاني دروازه باندې ووتل او چې خلق ټول اودۀ وو نو د بي مارو کلي نه بره په غونډو باندې ئې خپلې توپې او فوځونه وخیژول.

(۱) یوه د اسونو توپه د سارجنټ ملهال د لاندې

(۲) پنځۀ کمپنۍ د 44 نمبر پلټنې د کپتان لیهټن (ګوره) د لاندې

(۳) شپږ کمپنۍ د پنځم نمبر پلټنې د لفټیننټ کرنل آیور د لاندې

(۴) شپږ کمپنۍ د اووۀ دیرش نمبر پلټنې د میجر کرشا د لاندې

(۵) یو سل تنه سرې د سپرمینا د لفټیننټ لینک د لاندې

(۶) یو سکواډرن (اسکودر) د پنځم نمبر رسالې د کپتان باټ د لاندې

(۷) یو سکواډرن (اسکودر) د بې قاعدې رسالې د لفټیننټ واکر د لاندې

(۸) یو سل تنه د اینډرسن د رسالې

غازیان د بي مارو په کلي کښې غافله پراتۀ وو چې فیرنګیانو خپل سرې په خپلو پوستونو باندې ودرول او سمدستي ئې د شپې په تیارۀ کښې د غازیانو په مورچو باندې ګوله باري شروع کړه. غازیان په ابتدا کښې وارخطا شول. ځکه چې د دومره لوېې حملې دپاره تیار نۀ وو ولې چې څومره وخت تیریدو نو د هغوي حوصله په ځائے کیدله او هغوي په چارچاپیره کورونو او برجونو کښې مورچې ونیولے. او د جزائلو په ډزو ئې د فیرنګیانو د ګوله باری جواب ورکړو. هم په دې شان څو ګینټو پورې د فریقینو ښه مقابله وشوه. ولې هر څومره چې وخت تیریدو نو غازیانو سره ګولۍ او دارو په ختمیدو راتلل لاچار هغوي د کلي نه په وتو باندې ګوتې پورې کړې او د څلویښتو تنو نه بغیر ټول غازیان د کلي نه ووتل. دغه وخت د اووۀ دیرش نمبر پلټنې دوۀ کمپنو ته حکم وشو چې تاسو او څۀ ګوره فوځ د میجر سوین او کرشا د کمان د لاندې دې سمدستي په کلي چپاؤ وکړي او قبضه دې پرې وکړي. د بدې ورخې نه میجر سوین لاره خطا کړه. او د کلي د لوېې دروازې په ځائے هغه په یوه کړکۍ باندې ورغلو چې هغه غازیانو د وړومبے نه بنده کړې وه. او اړمونه ئې ورته لګولي وو.

چونکې غازیان په شمار کښې لږ وو هغوي په ښو ښو ځایونو باندې خپل نشانه باز د ورومبے نه مقرر کړي وو. نو څۀ وخت چې هغوي د میجر سوین دا غلطي ولیده نو داسې آتش بازي ئې پرې وکړه چې د هغۀ سرو ته ئې ډیر نقصان ورسولو او هغه ئې په خپله هم په ښځ باندې په ګولی وویشتو قریباً نیمې ګینټې پورې میجر سوین باوجود د ژوبل کیدو نه په کلي کښې د ورننوتلو کوشش وکړو خو کامیاب نۀ شو. لـه دې کبله بریګیډیر شیلټن هغه واپس راوغوښتو. پـه لږ ساعت کښې غازیان په ډیر لوے شمار کښې د کابل د ښار د طرف نه د بي مارو کلي طرف ته په نیت د غزا روان شول. او راتلو سره په هغوي کښې قریباً لسو زرو تنو په پاتې شوؤ غونډو باندې قبضه وکړه او په هغوي کښې څۀ د بي مارو کلي ته راننوتل او خپلو ملګرو له ئې دارو ګولی ورکړل. دا ټول غازیان د هغې کسانو په خبر بي مارو کلي ته راغلل چې څوک لږ ورومبے د کلي نه د دارو ګولی د ختمیدو په سبب وتي وو.

اوس د سحر اووۀ بجې شوې تازه دم غازیانو د هغې غونډو نه چې په کومو باندې هغوي پریوتي وو پـه انګریزي فوځ باندې ډزې شروع کړې او دغه شان صحیح نښې ئې وویشتې چې د انګریزي فوځ د پاره پښې ټینګول ډیر مشکل شو. لفټیننټ کرنل آیور په خپله د غازیانو د ګولو په باران کښې ورمخکښې شو او د خپل کمان لاندې سپاهیانو ته ئې حکم وکړو چې د غازیانو په یوې دستې باندې حمله وکړئ.

مګر څۀ وخت چې هغـه ور وړاندې شو نو یو سپاهـي هـم پـه هغۀ پسې لا نۀ رو پـه دې باندې کرنل آیور اواز وکړو چې اګر کۀ زما سرې ما پریږدي مګر زۀ به خپل فرض ادا کوم. هر کله چې د کرنل آیور دا بهادري فوځ ولیده نو په هغوي کښې صرف دولس تنـه سپاهیان د خپل شرم نه هغۀ پسې لاړل. مګر باقي فوځ هم پیاده او هم رسالې ته د غازیانو د لاسه سخت نقصان ورسیدو. تر نهو لسو بجو د ورځې هم په دې طریقه طرفینو کښې جنګ روان وۀ. چې د غازیانو د رسالې یوه دسته د انګریزي فوځ په ښي طرف راښکاره شوه او قریب وه چې د هغوي ښي طرف ئې بالکل تباه کړے وے مګر عین په دې موقع انګریزي توپچي ډیر لوے کار وکړو او دا شان ګولی ئې په دې دسته باندې وۀ ورولے چې رساله په شاه باندې وتښتیده. عبدالله خان اچکزے د غازیانو د طرف نه په دې جنګ کښې شهید شو. ولې د فیرنګیانو د لاسه نه بلکې د اجرتي قاتل د لاسه چې هغه هم په غازیانو کښې شامل وۀ.

باوجود د دې عارضي پسپایی نه غازیان اوس د انګریزي فوځ نه په درې طرفه راتاؤ شول او صرف چاونی ته د تللو لار ئې ورته خالي پریښودې. اوس چونکې د جنګ ډیر وخت شوے وۀ او انګریزي فوځ ټوله شپه په ویښه تیره کړې وه نو هغوي سره د توپچي دارو ګولی په ختمیدو راغلل او هم ئې سپاهیان ستومانی، د شوګیرې او د تندې نه بې حس و حرکت

شـول. او د جـنـګ قـابـل پـاتې نۀ شول . د دې نه علاوه د هغوي نه يوه لويه حصه قتل او ژوبل شـوه قريباً لس يوولس بجې د غازيانو يوه بله دسته د شاه باغ نه په ميدان کښې يوې غونډۍ ته په دې غرض رارروانه شوه چې د چاونۍ او انګريزي فوځ په منځکښې د آمدورفت لاره بالکل بـنـده کړي. مګر د چاونۍ نه څۀ فوځ او د کوهستاني دروازې مخامخ د يو جماعت نه څۀ نور انګـريزي فوځ دا غازيان د مخکښې تلو نه بند کړل. اوس د غونډۍ غازيان ورو ورو انګريزي فوځ ته رانزدې کيدل او ډيره په حوصله او په زړورتيا باندې ئې په انګريزي سپاهيانو سخته او مهلکه او په نښه آتش بازي کوله. انګريزي فوځ ساعت په ساعت زړه بائللو او هر څومره چې د هغوي افسرانو د خپلې بهادرۍ ذاتي نمونې ورته ښکاره کړې ولې هغوي يو کس هم د خپل افسر په حکم باندې د غازيانو په جزائلو باندې ور وړاندې نۀ شو.

د غـازيـانـو يـوې دستـې اوس د انـګريزي توپې د اخستو کوشش شروع کړو. ديخوا انـګـريـزي رسـالې ته حکم وشو چې دا دسته نزدې کيدو ته مۀ پريږدئ او حمله پرې وکړئ. مـګر د رسالې سپاهيانو هم خپلو افسرانو پسې د تللو نه انکار وکړو. غازيانو چې د ګوره او د هـنـدوستاني فوځ دا بزدلي وليده نو ډير زيات زړور شو او په داسې جوش او بهادرۍ سره ئې د انـګـريـزي فـوځ پـه قلب باندې حمله وکړه چې د ټول فوځ وارپار خطا شو او يو خوا بل خوا مـات شول. غازيانو سمدستي په توپه باندې قبضه وکړه او د توپې ورروستنۍ حصه او اسونه ئې خپـل طرف ته روان کړل. په دې اثنا کښې د عبدالله خان د زخمي کيدو خبر په غازيانو کښې خور شو او پـه دې سبب په هغوي کښې بدنظمي پيدا شوه. ديخوا نه انګريزي افسرانو خپل تښتيـدونـکـي سپـاهـيـان پـه انتهـائـي کـوشـش او د ذاتـي بهادرۍ د نمونې په قائمولو سره بيا رايوځاے کړل.

څۀ وخت چې فيرنګيانو ته د پښتنو د بې انتظامۍ حال ښکاره شو نو هغوي زړور شول او په غازيانو باندې ئې د نوې سر نه حمله وکړه. چنانچه هغه انګريزي توپه بيا د هغوي په لاس ورغـلـه پـه کـوم ځـاے کښې چې انګريزي توپه پرته وه په هغه ځاے کښې کپتان ميکنتاش او لفـتيننټ لينګ مړۀ پراتۀ وو. او ورسره يو څو تنه سپاهيان هم مړۀ وو. لږ ساعت پس غازيان دوبـاره راټـول شـول او بيـا ئې پـه انګريزي فوځ باندې حمله وکړه دا ځل انګريزي فوځ پوره شـکـسـت وخـوړو او پـه ډيـرې بدنظمۍ سره چارچاپيره په هر طرف وتښتيدل. هرچند کۀ د هغوي افسرانو د هغوي د راجمع کولو کوشش وکړو مګر هر يو سپاهي خپل ځان چاونۍ ته د رسـولـو پـه فـکر کښې وۀ. او د هيڅ افسر په حکم ئې غوږ نۀ کښيښودو. غازيان هم په داسې جوش او پـه داسـې همت او په زور سره د هغوي تعاقب بالخصوص د غازيانو رساله په داسې جوانـمـردۍ پـه انګريزي فوځ مات شو او چاونۍ ته ئې مخه وکړه. نو کومو غازيانو چې د بې بـارو په کلي کښې مورچې نيولے وے هغوي راووتل او چاونۍ ته ئې د انګريزي فوځ د تيښتې

لار بنده کړه.

هر کله چې انګریزي فوځ د چارچاپیره نه راګیر شو نو غازیانو په داسې بهادرۍ باندې په هغوي راکښېښودې چې زنده سر ترینه په مشکله پاتې شو او څومره فوځ چې د شپې راوتې وۀ هغه قریباً قریباً ټول تباه او هلاک شو. څۀ لږ ډیر انګریزي افسران او سپاهیان چې چاونۍ ته بچ لاړل د هغې وجه هم دا وه چې عثمان خان نومې د غازیانو یو سردار اراداتاً خپل سړي د نور قتل نه منع کړل کۀ نۀ وي نو لفټیننټ ایري په خپل کتاب کښې لیکي چې په انګریزي فوځ کښې به یو کس هم ژوندې نۀ وۀ پاتې شوې.

"Lady Sale says:- Osman Khan was heard by our sepoys to order his men not to fire on those who ran, but to spare them. A chief prc'ably the same, rode round kershaw three times when he was compelled to run with his men; he waved his sword over his head, but never attempted to kill him; and Capt. Trevor says his life was several times in the power of the enemy, but he was also spared."

ترجمه : "لیډي سیل وائي چې زمونږ سپاهیانو په خپله واؤریدل چې عثمان خان خپلو سړو ته حکم ورکړو چې کوم سړې تښتي په هغوي باندې ډزې مۀ کوئ بکې پرېږدئ ئې. یو سردار چې غالباً هم دغه عثمان خان وۀ د کرشا نه درې ځله په اس باندې تاؤ راتاؤ شو: څۀ وخت چې کرشا خپلو سړو سره په تیښته باندې مجبور شو او هغۀ د هغۀ په سر باندې توره وشړقوله مګر د هغۀ د وژلو کوشش ئې ونۀ کړو او کپتان ټریور وائي چې زما ژوندون څو څو ځله د دشمن په لاس کښې وۀ مګر زۀ هغوي پرېښودم."

د پښتنو د شرافت، د فیاضۍ، د حسن اخلاق او د ځوانمردۍ په ثبوت کښې د دې نه بهتر ثبوت نۀ شي پیش کېدې. د داسې دشمن په مقابله کښې چې هغه بلاوجه او بې سببه صرف د توسیع سلطنت او د ملک ګیرۍ په طمع د هغوي د پلار نیکۀ په ملک باندې ئې په زور قبضه کړې وه او بیا د هغوي په عزت، په آبرو او په ننګ باندې ئې دنګلي وو د پښتنو هغوي سره دا قسم سلوک کول د مهذب قومونو په تاریخ کښې نظیر نۀ لري. د دې په مقابله کښې فیرنګیانو د غازیانو د بیل بیل مشر په سر باندې لس لس زره روپۍ انعام مقرر کړې وۀ اؤ د هغوي د قتلولو دپاره ئې خلقو سره د لویو لویو رشوتونو اقرارونه کړي وو. چنانچه هم د دې بې مارو په جنګ کښې عبدالله خان اچکزې د یو اجرتي قال د لاسه د جزائل په ګولۍ باندې د انګریزانو په وینا شهید شو. انګریزي سپاهیانو سره جزائل نۀ وو بلکې جزائل غازیانو سره وو. دا اجرتي قاتل په غازیانو کښې شامل شو او د جنګ په اړې ګړې کښې ئې د انګریزي انعام د ګټلو دپاره ښه موقع بیامونده او عبدالله خان اچکزې ئې قتل کړو.

دغه شان میرمسجدي چې په کوهستان کښې د تحریک ازادۍ مشر وۀ هغه هم د یو فیرنګي په وینا اجرتي قاتلانو قتل کړو. کومو اجرتي قاتلانو چې دا دواړه مشران قتل کړي

وو هغوي دواړو د خپل اجرت مطالبه د فيرنګيانو نه وکړه ولې د قسما قسم بهانو په وجه دا موعوده رقم هغوي له چا ادا نۀ کړو. اګرچې د دې زمانې ځنې ځنې انګريزي افسران دا وائي چې د دې مشرانو د قتل دپاره کوم انعامونه چې کنولي په خپل خط کښې موهن لعل ته ليکلي وو په هغې کښې د ميکناټن هيڅ مصلحت نۀ وۀ ولې دا عذر د هغوي هرګز قابل اعتبار نۀ دے. کنولي د ميکناټن ماتحت او رشته دار وۀ هغۀ د ميکناټن د طرف نه شاه شجاع سره په سرکاري حيثيت باندې وسيدلو او هر کار به چې هغۀ کولو نو د هغې منظوري به ئې د ميکناټن نه اخسته. يا به ئې د هغې اطلاع هغۀ له ورکوله. دا خبره هيچرې قرين قياس نۀ ده عقل نۀ اخلي چې کنولي دې په خپل مخ سر موهن لعل ته په خپل خط کښې د تحريک ازادئ د مشرانو د قتل دپاره د لسو لسو او پنځلسو پنځلسو زرو لوي لوي رقمونه د ادا کولو اقرار او وعده کړے وي.

په پنځم نومبر کنولي موهن لعل ته د دې مشرانو په سر دا رقمونه ومنل او هم د دې نومبر په اخر کښې دا دواړه مشران قتل شول. عبدالعزيز يو سړے چې د عبدالله خان اچکزي د قتل دپاره موهن لعل باقاعده طور سره مقرر کړے وۀ چنانچه د عبدالله خان د قتل نه پس هغۀ خپل اجرت وغوښتو ولې هغۀ له موهن لعل په دې بهانه موعوده اجرت ور نۀ کړو چې تا مونږ له د عبدالله خان سر نۀ دے راوړے. د مير مسجدي د مرګ د حالات يقيني طور سره څۀ پته نۀ لګي ځنې خلق وائي چې هغه په زهرو باندې شهيد کړے شوے دے او ځنې وائي چې په تيزندی. بهرصورت د هغۀ قتل په غير فطرتي طريقې سره واقع شوے دے. په کوهستان کښې هغه د اولس په خلقو کښې ډير هردلعزيز وۀ او بل هيڅوک هم د هغۀ د مرګ خواهشمند نۀ وو. د هغۀ په قتل پسې هم موهن لعل يو سړے کړے وۀ چنانچه محمد الله نومے يو سړي په قرآن باندې قسم وکړو چې ما مير مسجدي په اودو په مرئ خپه کولو قتل کړے دے. هغۀ هم د موهن لعل نه د دې اجرت وغوښتو مګر په کومه وجه چې عبدالعزيز ته موعوده رقم ور نۀ کړې شو هم په هغه وجه محمد الله ته هم موهن لعل د دې رقم د ورکولو نه انکار وکړو. ميکناټن په خپل يو تحرير کښې دا تسليموي چې د ټول بغاوت په دوران کښې د کنولي خط و کتابت ماسره جاري وۀ د هغۀ خپل الفاظ دا دي :

"I was in constant communication with the Shah through my Assistant, Lieut. J. B. Conolly, who was in attendance on His Majesty in Bala Hissar."

ترجمه : "زما باقاعده خط و کتابت بادشاه سره زما د اسسټنټ لفټيننټ جے بي کنولي په ذريعه مسلسل جاري وۀ او کنولي بادشاه سره په بالاحصار کښې وۀ."

دې کښې شک نشته چې څۀ وخت دې اجرتي قاتلانو ته د اجرت ورکولو سوال ميکناټن ته پيش شو نو هغۀ موهن لعل ته وليکل :

"I am sorry to find from your letter of last night that you should have

supposed, it was ever my object to encourage assassination."

ترجمه : "زهٔ افسوس کوم چې ستا د وروستنۍ شپې د خط نه ماته دا معلومه شوه چې تا زما متعلق دا خیال کړے وهٔ چې زهٔ هم د اجرتي قاتل په حق کښې یم باغیان ډېر خراب خلق دے مګر مونږ له په نا جائزه طریقه د هغوي وژل نهٔ دي پکار."

ولې دا خط میکناټن موهن لعل ته په یکم دسمبر 1841ء باندې لیکلے وهٔ څهٔ وخت چې د تحریک دواړه مشران د کنولي د تجویز مطابق قتل شول. او اوس صرف قاتلانو ته د اجرت سوال درپیش وهٔ. دا هم ممکنه ده چې میکناټن د موهن لعل په مخکښې د دې خبرې د تسلیمولو دپاره تیار نهٔ وهٔ چې په دې ناکاره کار کښې زما هم څهٔ حصه شته اګر کهٔ کنولي ته هغهٔ څان له خفیه طور د دې خبرې ترغیب ورکړے وي څکه چې موهن لعل اخر ي هندوستانے ملازم وهٔ او د میکناټن په هغهٔ باندې دومره اعتبار نهٔ وهٔ او کنولي د هغهٔ رشته دار او اعتباري وهٔ میکناټن سره دا شک وهٔ چې هسې نه چې یوه ورځ موهن لعل زما دا راز ښکاره کړي ولې په کنولي باندې د هغهٔ دا شک نهٔ شو کیدے. بهرکیف کهٔ چرې په دې ټوله معامله فکر وکړې شي نو سړے به دې نتیجه رسي چې میکناټن کنولي ته د دې خبرې اجازت په ښکاره یا اشارةً ضرور ور وهٔ څکه چې د موهن لعل د خط نه کم از کم دا خو معلومیږي چې د هغهٔ دا یقین وهٔ چې د کنولي د قاتلانو دا دومره لوے رقم په طور د اجرت منل د میکناټن په صلاح او مشوره باندې دي.

انګریزانو ته د خپل یو زخمي سپاهي یا افسر د راوړلو موقع هم په لاس ورنهٔ رغله. او هم دغه شان جنګ کښې قتل شول. په دوئ کښې لفټیننټ کرنل آیور هم شامل وهٔ. انګریزي توپه هم بیا د غازیانو لاس له راغله او هغوي خپل طرف ته راښکله. په دې جنګ کښې د فیرنګیانو نامتو نامتو افسران او د فوځ بهترینه حصه تباه شوه او څهٔ باقي مانده امید چې د سپاهیانو یا د افسرانو په زړهٔ کښې د خپلې کامیابۍ متعلق وهٔ نو هغه هم د بي مارو د سخت شکست نه پس بالکل ورک شو. هر یو سپاهي او افسر ته خپل مرګ یقیني طور ور وراندې شو او د هغوي د مایوسۍ او د بې اعتمادۍ څهٔ حد پاتې نهٔ شو. هغوي د جنګ همت خو د وړومبے نه بائللے وهٔ اوس هر یو سپاهي او افسر د تښتیدو او د واپس تلو په تجویزونو باندې زور لګولو. د افسرانو اثر په فوځ بالکل پاتې شوے نهٔ وهٔ. هر طرف ته په سپاهیانو کښې د بد نظمۍ چرچه وه او یو سپاهي به هم د خپل افسر حکم نهٔ منلو. کوم فوځ نه چې تنظیم او د خپل افسر د حکم د تعمیل جذبه لاړه شي نو بیا د هغوي طاقت او رعب بالکل تباه او برباد شي.

دغه حال د بے مارو د شکست نه پس د انګریزي فوځ وهٔ تر دې وخته پورې په افغانستان کښې د انګریزي فوځ د کامیابۍ صرف یوه وجه وه او په فوځ کښې د تنظیم

موجودګي وه. د پښتنو لښکر د ټول عمر نه غير منظم راغلے وۀ او هيڅ څۀ باقاعده ضابطه په ميدان جنګ کښې د هغوي د عمل دپاره موجود نۀ وه. څۀ وخت چې د پښتنو او د انګريزي فوځ په منځکښې د تنظيم امتياز پاتې نۀ شو نو بيا خو پښتانۀ په بهادرۍ، شجاعت او په قربانۍ کښې د انګريزي فوځ نه به درجه ها زيات وو. د دې نه علاوه د غازيانو په زړۀ کښې د غير قوم د حکومت نه د خپل ملک د ازادولو جوش او جذبه موجوده وه. مګر انګريزي فوځ ټول د روپو او د اجرت په لالچ افغانستان ته د پښتنو نه د يو غير قوم د پاره د هغوي د ازادۍ شوکولو دپاره راغلي وو. په دې جنګ کښې د هغوي ځان له څۀ قامي يا مذهبي دلچسپي نۀ وه.

غرض دا چې يو طرف ته راستي، حق او ازادي وه او بل طرف ته زياتے او د غلامۍ طوق وۀ. خدائے تعالیٰ هم هغه څۀ وکړل چې کوم هغۀ ټول عمر کړي دي. او حق له ئې په باطل باندې برے ور کړو.

"په شليريشتم نومبر د عثمان خان چې د چا ذکر وړومبے شوے دے د طرف نه د ميکناټن په نوم يو خط راورسيدو دا عثمان خان د زمان خان قريبي رشته دار وۀ او په قوم بانډي بارکزے وۀ. او د فيرنګيانو خيرخواه مشهور وۀ. دې سردار کپتان ډرمنډ له په خپل کور کښې د ابتدائے تحريک ازادۍ نه پناه ورکړې وه او د انګريزانو لوي لوي افسران ئې د بے مارو په جنګ کښې د غازيانو د قتل عام نه بچ کړي وو. په دې خط کښې هغۀ په ډيرې نيک نيتۍ ميکناټن ته دا ليکلي وو چې د بے مارو په شکست کښې په درويشتم نومبر ما په خپل حکم خپل سړي د انګريزي فوځ د تعاقب نه منع کړل او کۀ چرې مونږ په هغه ورځ د انګريزي فوځ د مکمل شکست نه پوره پوره فائده وچته کړې وے نو ستا ټول فوځ او چاونړۍ به هم بالکل تباه شوې وه. مګر د سرداران قوم دا منشا وه چې تاسو ته دې دومره خطرناک نقصانات درکړې شي چې تاسو بالکل ورک شئ. د هغوي واحد مقصد دا دے چې تاسو په چپه چپيا زمونږ ملک پريږدئ او بيا مونږ په خپل ملک باندې د خپل رواج او قاعدې مطابق حکومت کوؤ او خپل بادشاه به پخپله خوښوؤ."

" A letter to the address of the envoy was this day received from Usman Khan Barakzye, a near relative of the new King, and generally supposed to have a favourable bearing towards us, wherin he took credit to himself for having checked the ardour his followers in their pursuit of our flying troops on the preceding day, when, by following up their success, the loss of our cantonment and the destruction of our force was inevitable; but that it was not the wish of the Chiefs to proceed to such dreadful extremities, their sole desire being that we should quietly evacuate the country, leaving them to govern it according to their own rules, and with a King of their own choosing."

( Lieut. Eyre's The military operations at Kabul P. 136.)

څهٔ وخت چې دا چیټی میکناټن ته راورسیده نو هغهٔ جنرل ایلفنسټن ته یو باقاعده سرکاري خط ولیکلو چې ته د فوځي نقطهٔ نګاه نه ماته رائ راکړه چې زمونږ دپاره په چاونی باندې تر څومره موده پورې قبضه ساتل ممکن دي. نو کهٔ چرې زیاتې قبضه ساتل ناممکن وي چې زهٔ د کابل موجوده سردارانو سره د صلحې خبرې اترې وکړم. د دې خط په جواب کښې هغهٔ ته جنرل ایلفنسټن ولیکل چې قریباً د درېو هفتو نه مونږ د غازیانو د لاسه قلابند یو. زمونږ خرڅ خوراک قریباً ختم شوے دے او د اسونو او څاروو دپاره ګیاه هم خلاصه شوې ده. د مخکښې دپاره هم د رسد رسانی څهٔ امید نشته زمونږ فوځونه ډېر کم شوي دي او د ناجوړه او زخمیانو شمار خو ورځ تر ورځ زیاتیږي، او چونکې د چاونی د خراب محل وقوع په وجه مونږ د هغې په ښهٔ شان سره حفاظت نشو کولے او د دې نه علاوه چونکې ژمے په سر راروان دے او هندوستان سره د آمدورفت لارې ټولې بندې شوي دي. د دې کبله مونږ ته د امداد د رارسیدو هم څهٔ امید نشته او حال دا دے چې ټول ملک زمونږ برخلاف راوچت شوے دے. په دې وجوهاتو باندې سونږ خپل اقتدار په دې ملک کښې ممکن نهٔ ده چې وساتلے شو. پس تاله پکار دي چې د غازیانو د صلح د خبرو او اترو د تجویز نه فائده وچته کړے.

د جنرل ایلفنسټن د دې رائ نه پس میکناټن غازیانو سره د خبرو اترو کولو تجویز منظور کړو چنانچه په رویشتم نومبر د غازیانو د طرف نه دوه تنه مشران سلطان محمد خان بارکزے او مرزا احمد علي قزلباش چاونی ته دننه کپتان لارنس او ټرېور رادننه کړل. د غازیانو د طرف نه سلطان محمد خان میکناټن ته دا ووئیل چې مونږ پښتنو تاسو له اوس په میدان جنګ کښې سم په نره شکست درکړے دے او تاسو په مونږ خپل جنګ بائللے دے نو پکار دي چې انګریزان غیر مشروط طور سره مونږ ته خپل ځایونه وسله او خزانه حواله کړئ. میکناټن ته دا شرط بالکل منظور نهٔ وهٔ. او هغهٔ دا کوشش کولو چې د غیر مشروط وسلې غورځولو په ځاے د هغوي سره ډېر د رعایت شرطونه غازیان طے کړي.

دې کښې شک نشته چې انګریزانو خو په خوشحالی او د ښهٔ سرېتوب په وجه پښتنو سره صلحه نهٔ کوله کهٔ چرې د میکناټن او د هغهٔ د ملګرو په افغانستان کښې د یوې لحظې د مقابلې هم نور امید وے نو هغوي به هیچرې هم د صلحې خبرې اترې نهٔ وے شروع کړے. مګر په انګریزي فوځ کښې د یوې ورځې د جګړې طاقت هم نور نهٔ وهٔ پاتې شوے. په دې وجه هغوي په لاچاری غازیانو له د صلح کولو دعوت ورکړو.

د بېے مارو د جنګ نه پس د انګریزي فوځ حالت سر جان کے په خپل کتاب صفحه 251 جلد دویم کښې په دا شان بیانوي:

"Nothing more was to be done by fighting a general gloom hung over the Cantonment. The most sanguine now began to despond. The troops had not only lost all heart-they had lost all discipline. The link which bound them to their officers seemed to be broken. The privations to which they were exposed were greant. Cold, hunger, and fatigue pressed upon them; and they had not strength to bear up against such a burden of woe. It was plain that no use could be made in the field of a force so feeble and dispirited. The time for action had passed. And so, when, on the day after this disastrous affair on the Bah-Maru hill, the enemy began to destroy the bridge which General Elphinstone, a short time before, had thrown over the Kabul River, the military chiefs looked idly on, whilst the outrage was being perpetuated almost within musket-shot of our position."

ترجمه : "اوس په جنګ هیڅ نهٔ شو کیدے په چاوڼی باندې د غم یوه تیارهٔ پرته وه او د امید نه ډک خلق هم مایوسه شول نهٔ صرف دا چې فوځ بالکل زړهٔ بائللے وهٔ بلکې هغوي کښې د هر قسم ضبط هم ورک شوے وهٔ. په کومه رشته چې هغوي خپل افسرانو سره ګنډلي شوي وو هغه بالکل ماته شوې وه. او کوم مصیبتونه چې په هغوي باندې نازل شوي وو هغه ډیر زیات وو. څلي، لوږې او ستومانۍ هغوي سخت مجبور کړي وو او په هغوي کښې د دومره غمونو د زغملو طاقت نهٔ وهٔ پاتې شوے. دا بالکل ظاهره باهره معلومیده چې د داسې کمزوري او بې همته فوځ نه په میدان جنګ کښې کار نهٔ شو اخستے کیدے. د جنګ وخت تیر شوے وهٔ او دغه وجه وه چې هر کله د بے مارو د شکست نه په دویمه ورځ دشمن د هغه پُل چې کوم لږ وړومبے جنرل ایلفنسټن په کابل سیند باندې جوړ کړے وهٔ په ورانولو ګوتې پورې کړې نو فوځي افسران هغوي ته هم دغه شان خوار خوار کتل. څهٔ وخت چې هغوي دا تباهي عین زمونږ د مورچو نه د ټوپک دګولۍ په زد کښې دننه کوله."

په داسې واقعاتو کښې کهٔ چرې سلطان محمد خان میکناټن ته دا قسم سخت شرطونه د صلح دپاره پیش کړل نو دا بالکل ناجائز نهٔ وو فاتح قومونو خپلو مفتوحو دشمنانو سره د دې نه په ډیرو سختو شرطونو باندې صلحې کړې دي. د انګریزانو د فتوحاتو د خپل تاریخ یوه یوه صفحه د دې قسم شرطونه نه ډکه ده. انګریزان افغانستان ته د پښتنو نه د هغوي د پلار نیکهٔ د ملک اخستو دپاره راغلي وو نو کهٔ چرې پښتنو په نره او په صفا میدان کښې هغوي لـه شکست ورکړو نو د نرم نه نرم سلوک چې هغوي فیرنګیانو سره کولے شو هغه دا وهٔ چې هغوي ئې ټول تړلي هندوستان ته واپس استولے وے. مګر د میکناټن د مغرور طبیعت نه دا بعیده وه چې په دې قسم شرط باندې هغه رضا شوے وے. له دې کبله د جوړې خبرې ناکامیابې شوې، او سلطان محمد خان هغهٔ ته ووئیل چې اوس به سبا له کهٔ خیر ... نو د جنګ په میدان کښې مخامخ کیږو میکناټن ورته په جواب کښې ووئیل چې بهر کیف د قیامت په ورځ خو به مونږ یو بل سره ضرور مخامخ کیږو. ګڼه به وائ لکه چې میکناټن د بنې

نوع انسان د خدمت دپاره افغانستان ته راغلي وۀ او پښتنو هغۀ سره ډېره ناجائزه کوله.

په اول دسمبر باندې اوس غازيانو په بالاحصار باندې چپاؤ وکړو او څۀ د مطلب کاميابي ئې حاصله نۀ کړه. په څلورم او پنځم دسمبر غازيانو بيا د بې مارو د غونډو نه په چاونړۍ کښې دننه ګولۍ وۀ وروليې. او د محمد شريف په قلعه باندې ئې د قبضې کولو کوشش وکړو. اګرچې په دغه ورځ د محمد شريف قلا د غازيانو لاس له رانغله ولې په انګريزي فوځ باندې داسې زوروره حمله غازيانو وکړه چې د هغوي په زړونو کښې يو لوے هيبت پيدا شو او د دې قلا سپاهيانو هم د جنګ کولو نه ړۀ بالکل بائللو. په شپږم دسمبر سحر وختي د محمد شريف د قلا سپاهيانو د بدلي دپاره چاونړۍ نه د 44 نمبر پلټنې يوه کمپنې د ګورو د لفټيننټ ګرے د کمان لاندې او يوه کمپنې د 37 نمبر پلټنې هندوستاني لفټيننټ هاټري د کمان لاندې واستولے شوه. مګر د بدې ورځې نه زړو سپاهيانو دا نوي سپاهيان دا شان په خبرو ويرول چې هغوي د وړومبے نه د جنګ کولو اراده پريښې وه. په دغه ورځ د غازيانو يو څو جزائل چيان چې د شاه باغ د طرف نه د ونو په پناۀ کښې د محمد شريف قلا طرف ته راغلل او په دې نوۀ سپاهيانو ئې ډزې وکړې او لفټيننټ ګرے ئې زخمي کړو.

ګوره سپاهيان د ګرے په زخمي کيدو باندې داسې هيبت واخستل چې خپلې بسترې ئې وترلې او سمدست تيښتې ته تيار شول. غازيانو چې د ګوره دا بې همتي وليده نو ډېر زړور شو او يو د جوش نه ډک چپاؤ ئې په قلا باندې وکړو ګوره سپاهيانو وارخطا ځان له د قلا په ديوالونو باندې په اوړيدلو ګوتې پورې کړې. اوچاونړۍ ته ئې مخه وکړه. هندوستاني سپاهيان لا هم هغه شان په جګړه کښې لګيا وو چې ګوره ئې په تيښته وليدل نو هغوي هم د قلا نه پښې وښکلې. هر څومره کۀ لفټيننټ هاټري د ګوره او د هندوستاني سپاهيانو د راټولولو کوشش وکړو خو يو کس هم د هغۀ د حکم تعميل ونۀ کړو. د 37 نمبر پلټنې دوه هندوستاني سپاهيان مړۀ او دوه زخميان په قلا کښې دننه پاتې شول مګر د ګورو د 44 نمبر پلټنې يو ګوره سپاهي هم په جنګ کښې مړ نۀ شو او نۀ ژوبل شو او صرف د بزدلۍ نه وارخطا د قلا نه راوتښتيدل. لفټيننټ هاټري دغه شان بالکل يواځې په قلا کښې پاتې شو او اخر هغه هم لاچار قلا پريښنوده.

غازيانو سمدستي خپله جنډه د قلا په ديوال باندې لګه کړه. او د خوشحالۍ نعرې ئې وويستې په دې جګړه کښې ګوره او هندوستاني فوځ دومره بزدلي ښودلې وه چې يوه تحقيقاتي جرګه په هغوي باندې مقرر شوه مګر د دې جرګې د رپورټ مطابق دا ثابته شوه چې ګوره فوځ سخته بزدلي کړې ده او هندوستاني د ګورو د تيښتې په وجه قلا پريښې وه.

په دغه وخت د چاونړۍ د بازار حفاظت هم 44 نمبر د ګوره پلټنې يوې بلې دستې ته سپارلے شوے وۀ. هر کله چې دوئ د محمد شريف قلا نه خپل ملګري ګوره په تيښته وليدل

نو دوئ هم هسې د ويرې نه تيښتې ته تيار شو. خو لفټيننټ وهټ پرې سمدستي پوهه شو او هغوي ئ رامنع كړل ولې افسران اوس د دې پلټنې په گوره سپاهيانو باندې دومره بې اعتباره شول چې هغوي د 37 نمبر پلټنې يو هندوستاني گارډ د بازار په خلۀ كښې د دې غرض دپاره ولگولو چې يو گوره سپاهي هم د بازار نه بهر تښتيدو ته پرې نۀ ږدي. په اووم دسمبر افسرانو دا خيال وكړو چې چونكې د بازار حفاظت د چاونۍ دپاره ډير ضروري دے او چونكې 44 نمبر گوره پلټنې ډيره بزدلي كړې ده د دې دپاره د دې ځاے حفاظت دې 37 نمبر هندوستاني پلټنې ته وسپارلے شي. چنانچه ټول گوره سپاهيان د بازار نه واپس راوغوښتې شول او د هغوي په ځاے هندوستاني سپاهيان ولگيدل.

په اووم دسمبر كپتان هے بالاحصار ته د خوراك راوړو دپاره واستولے شو او اگرچې هغه د چاونۍ نه په ورروستي پار كښې روان شوے وۀ مگر د سياه سنگ د غونډو نه په هغۀ يو څو ډزې وشوې. او يو سخت هيبت په سپاهيانو باندې پريوت. د يابوگانو نه ټول بارونه پريوتل او ډير ميخزين دغه شان د غازيانو لاس ته راغلو. په اتم دسمبر ميكناټن بيا د جنرل ايلفنسټن نه تپوس وكړو چې آيا انگريزي فوځ دپاره څۀ نا څۀ جنگ كول هم ممكن دي كنه؟ هغۀ ورته په جواب كښې ووئيل چې هر څۀ رنگ چې كيدے شي غازيانو سره جوړه پكار ده دې دپاره چې زمونږ فوځ په سلامتۍ سره د افغانستان نه هندوستان ته واپس شي. په دغه ورځ باندې د فوځ غله بالكل ختمه شوه او اسونه اوښان سرې او ښځې ټول وږي شو مگر څۀ لږ شان اوړۀ د يوې ورځې د فاقې نه پس د بالاحصار نه راورسيدل.

د جنگ ازادۍ د ابتدا نه ميكناټن د غازيانو هرې يوې قبيلې ته د رشوتونو كوشش كړے وۀ چنانچه د نائب محمد شريف په لاس باندې ډيرې روپۍ غلجو ته وركړے شوے وے او هم د دې رشوتونو په وجه انگريزانو تر دې وخته پورې په پټه د چارچاپيره ملك نه غله حاصله كړې وه. مگر هر كله چې محمد اكبر خان زاورسيدو نو د غلجو نه د غلې راتلۀ هم بند شو.

د جنگ ازادۍ د شروع كيدو نه لږ وړومبے يعنې د اكتوبر په مياشت كښې محمد اكبر خان د تركستان د علاقې نه باميان طرف ته راروان شوے وۀ او عام طور باندې دا مشهوره وه چې د غلجو بغاوت هم د هغۀ په وينا باندې شروع شوے وۀ. بهرصورت څۀ وخت چې هغۀ ته د كابل د تحريك خبر ورسيدو نو سمدستي هغه د باميان نه كابل ته راغلو په كابل كښې د هغۀ په راتلو غازيانو بيشانه ډيرې خوشحالۍ وكړې او ډيرې توپې او توپكونه ئ خلاص كړل. د قبائلو ټول لوي لوي مشران د هغۀ استقبال له راغلل او په ډير قدر او عزت سره ئ هغه په دويشتم نومبر كابل ته راوستو. راتلو سره محمد اكبر خان په ډيرې تندۍ سره د خپل قوم د ازادۍ په تحريك كښې شريك شو.

پـه يـولسم دسمبر بيا د ميكناټن او د غازيانو په منځكښې د صلح خبرې اترې وشوې د فيـرنـګيـانـو د طرف نه ميكناټن كپتان لارنس كپتان ټريور او كپتان ميكنزي او د غازيانو د طـرف نـه محمد اكبر خان،عثمان خان، محمد خان نائب امير د باركزے قبيلې نه، محمد شاه خان، حمزه خان، خدابخش خان د غلجو د قبيلې نه، خان شيرين خان د قزلباشو نه او نور وارۀ وارۀ مشـران وو. دا دواړه فـريـق د سيـاه سـنـګ نـه قبلې طرف ته په يو ميدان كښې جرګې ته كښينـاستـل. د سلام عليک نه پس ميكناټن خپلې خبرې دا شان راواخستې. هغۀ سردارانو تـه ووئيـل چـې " زمـونـږ تـعـلـقـات د پښتـنـو قام سره په تيرو شوو دوۀ كالو كښې ډير زيات خـوشـګـوار او د دوستـي وو مـګـر ډيـر افسوس دے چې د فريقينو دپاره دا فائده مند تعلقات نـاسـاپـه مـنـقـطـع شـو. " بيـا ئ ورته ووئيل چې " صرف د پښتنو د قوم خيرخواهي انګريزي حـكـومـت دې خبـرې تـه مـائـل كـړے وۀ چې هغوي شاه شجاع له د خپل پلار نيكۀ سلطنت حـاصـلـولـو پـه غـرض امـداد وركړي. او عام رعايا ټول د شاه شجاع په بادشاه كيدلو باندې خوشحاله وو. مګر اوس كۀ چرې هغوي د وړومبے په شان د هغۀ په حكومت خوشحاله نۀ وي نـو حـكـومت برطانيه له دا مناسب نۀ دي چې د خلقو د مرضى نه خلاف په افغانستان كښې د شاه شجاع ملګرتيا وكړي په دې سبب اوس زۀ د موجوده مشكلاتو د حل كولو په غرض او د فيـرنـګيـانـو او پښتنو په منځكښې د ښو تعلقاتو د قائمولو په غرض تاسو سره د جوړې خبرې اتـرې كـولـو دپـاره تيـار يـم. " پس د هغې نه ميكناټن د هغې عهدنامې شرطونه د پښتنو د دې جـرګې په مخكښې ولوستل چې په كومو باندې فيرنګيان د افغانستان د ملک نه وتلو ته تيار وو.

وړومبے د دې نـه چـې مونږه د دې عهدنامې شرطونه بيان كړو مونږ دا وئيل مناسب ګـنو چې د ميكناټن دا تمهيدي تقرير چې كوم هغۀ د پښتنو جرګې ته كړے وۀ ډومره د غلطو بيـانـونـو نـه ډک وۀ. د ټـولـو نـه وړومبے د هـغـۀ دا وينا "چې په وروستنو دوۀ كالو كښې د فيـرنـګيانو او د پښتنو تعلقات ډير خوشګوار او د دوستۍ وو" بالكل غلط او خلاف واقع ده. دا وينا هغۀ صرف خپل قام او غير جانبدارې دنيا له د دهوكې وركولو دپاره وركړې وه. كۀ نۀ وي نـو دا هـغـۀ ته په ډير ښۀ شان سره معلومه وه چې نۀ خو شاه شجاع او نۀ د پښتنو عام قوم دا غـوښتـلـه چـې مونږ باندې دې يو غير قوم چې مونږ سره ئ هيڅ اريک شريک نشته په داسې طريقه باندې حكومت وكړي چې مونږ د هغوي مريونه يو او هغوي دې زمونږه مالكان شي.

دې كښـې شک نشتـه چې په ابتدا كښې شاه شجاع فيرنګيان د دې دپاره افغانستان تـه راوستـي وو چـې هـغـوي زما دپاره د افغانستان حكومت واخلي مګر د هغۀ هم هيڅرې دا منـشـا نـۀ وه چـې هـغـوي دې د هـميـش دپـاره زمـونږ په ملک كښې لكه د هندوستان د عام ريـاسـتـونـو په شان خپل پوليټيكل افسران د ملک په اندروني معاملاتو كښې د دخل وركولو

دپاره مقرر کړي. او ټولې لويې لويې عهدې او د حکومت اصلي اختيارات دې په خپل لاس کښې وساتي. دا هم هغهٔ ته معلومه وه چې د ملک د يو سر نه تر بله سره پورې د انګريزانو د استبدادي حکومت برخلاف په قوم کښې د بې اطمينانۍ او بې چينۍ يو جوش موجود وهٔ مګر ميکناټن په دې ټولو واقعاتو د دې دپاره سترګې پټې کړې وې چې اخر د خپل فوځ د رويو او د پښتنو د قوم د بې اتفاقۍ او د باهمي بغض او حسد نه د فائدې وچتولو په ذريعه به مونږ دا ملک مکمل طور سره لاندې کړو. دا هم هغهٔ بالکل غلط وئيلي وو چې دا "خوشګوار تعلقات د پښتنو او فيرنګيانو ترمنځ ناساپي منقطع شو". هغهٔ ته د پښتنو د خفګان علم نهٔ صرف پخپله وهٔ بلکې ټولو فوځي افسرانو او برنس هم هغهٔ ته په ښهٔ وخت اطلاع ورکړې وه مګر هغهٔ ځان له هم دوکه ورکوله او نورو له هم او د دې خفګان د موجودګۍ نه ئې هميش انکار کولو.

د ټولو نه لوے دروغ هغهٔ دا ووئيل چې "صرف د پښتنو د قوم خيرخواهۍ انګريزي حکومت دې خبرې ته مائله کړے وهٔ چې هغوي شاه شجاع له د خپل پلار نيکهٔ د سلطنت د حاصلولو دپاره مدد ورکړي وغيره وغيره".

نن ورځې د يورپ د ټولو قومونو دا قاعده ده چې څهٔ وخت هغوي د چا نه د خپل پلار نيکهٔ ملک لاندې کول غواړي او په هغه ملک کښې د خپل حکومت قائمولو خواهش لري نو دنيا ته هغوي دا اعلان وکړي چې دا خو مونږ د هغې ملک د خيرخواهۍ او د هغې قوم د فائدې دپاره ځو چې د چا د غلام کولو دپاره هغوي ملا تړلې وي او خپله دشمني صرف هغه سړي يا ټولي سره ښکاره کړي چې څوک هغه وخت په خپل ملک کښې برسراقتدار وي او دا وينا دنيا ته وکړي چې مونږ صرف دا سړے يا ټولے د دې ملک نه لرې کول غواړو ځکه چې دهٔ يا دوئ په ملک کښې فتنه او فساد شروع کړے دے او مونږ چې څهٔ وخت دا ملک واخلو نو بيا به ئې هم د هغې قوم خلقو ته وسپارو. نو بيا په دې بهانه خپله يوه ګوډۍ په هغه ملک کښې برسراقتدار کړي او د هغهٔ او د هغهٔ د ملک د اختيار واګې ټول په خپل لاس کښې واخلي.

جاپان هم دا خوئ د يورپ د قومونو نه زده کړے دے او په چين کښې ئې دا قسم ډير حکومتونه قائم کړي دي د ميکناټن او د لارډ آکلينډ هم افغانستان کښې د دې قسم د حکومت د قائمولو اراده وه اګرچې دا اراده هغوي هم د شاه شجاع نه او هم د پښتنو د قوم نه بالکل خفيه ساتلے وه.

په تيرو شو صفحو کښې د دې ارادې د ثابتولو دپاره ډير کافي واقعات بيان شوي دي د دې دپاره د هغې بيا ليکل بې فائدې دي. مګر د يورپ په اخلاق او سياسيات کښې دروغ وئيل او خلقو له دوکه ورکول او په هغوي باندې زور زياتے او بې انصافي کول هيڅ ګناه نهٔ ده

میکناټن صرف د دې قاعدې کلیې مطابق دا وینا پښتنو ته کړې وه او هغهٔ ته دا ښهٔ علم وهٔ چې دا زهٔ چې څهٔ وایم دا هر څهٔ دروغ وایم کهٔ په چا کښې د عقل او د دیانتدارۍ یوه ذره هم وي نو هغه به په دې څنګه باور وکړي چې میکناټن او لارډ آکلینډ د هندوستان د بربنډ وږي او مفلس قوم ..... کروړه روپۍ او یو لوے فوځ د افغانستان په جنګ کښې صرف د دې دپاره خرڅ کړې چې شاه شجاع د خپل پلار نیکهٔ په سلطنت کښې بیا مستحکم شي. او چې پښتانهٔ په دې باندې خوشحاله شي. د یوولسم دسمبر 1841ء د دې عهدنامې شرطونه دا وو:

(1) The British troops now at Kabul will repair to, Peshawar with all practical expedition, and thence return to India.

(2) The Sardars engage that the British troops shall be unmolested in their journey, shall be treated with all honour, and receive all possible assistance in carriage and provisions.

(3) The troops now at Jalalabad shall receive orders to retire to Peshawar, so soon as the Envoy- and -Minister is satisfied that their progress will be uninterrupted.

(4) The troops now at Ghazni will follow, Via Kabul to Peshawar, as soon as arrangements can be made for their journey in safety.

(5) The troops now at Qandahar, or elsewhere within the limits of Afghanistan, will return to India, either Via Kabul or the Bolan pass, as soon as the necessary arrangements can be made, and the season admits of marching.

(6) The stores and property of whatever description formerly beloning to Amir Dost Mohd Khan will be restored.

(7) All property belonging to British officers which may be left behind in Afghanistan will be carefully preserved and sent to India as opportunities may offer.

(8) Shah Shuja-ul-Mulk will be allowed either to remain in Afghanistan on a suitable provision for his maintenance, not being under one Lakh of rupees per annum, or to accompany the British troops on their return to India.

(9) All attention and respect will be paid to such of the Shah's family as may be unable to accompany him and they shall be permitted to occupy their present place of residence in the Bala Hissar until their return to India, should the Shah resolve in accompanying the British troops.

(10) On the safe arrival of the British troops at Peshawar on their return to Afghanistan of the Amir Dost Mohd. Khan , his family , and all other Afghans detained in India.

(11) So soon as the Amir with his family shall reach Peshawar on their return to Kabul, the family of the Shah shall be allowed to return towards India.

(12) For the due fulfilment of the above conditions four respectable British officers will be left in Kabul as hostages, and will be allowed to return to India on the arrival of the Amir and his family at Peshawar.

(13) Sardar Mohd Akbar Khan, S. rdar Mohd Usman Khan and such other chiefs of influence as may be so disposed, will accompany British troops to Peshawar.

(14) Notwithstanding the retirement of the British troops from Afghanistan, there will always be friendship between that Nation and the English, so much so that the Afgha.,s will contract no alliance with any other foreign power without the consent of the English, for whose assistance hey will look in the hour of need.

(15) Should it hereafter be the desire of the Afghan nation nd the British Govt; to consent thereto, a British Resident at Kabul may be appo' ted to keep up the friendly communication between the two Governments , but without interfering in any way with the internal administration of Afghanistan.

(16) No one is to be molested on account of any part he may have taken in the late contest, and any person desirous of going to India witr the British troops shall be permitted to do so.

(17) From the date on which these articles are agreed the Sardars above-named undertake that the British troops shall be supplied with provisions on rendering payment for the same.

(18) All British officers and troops who may be unable from any cause to quit Afghanistan immediately shall be treated with all honour and respect and receive every assistance until the state of the season and of their preparations admits of their departure."

ترجمه :

"(۱) انگریزي فوځ مقیم کابل به هر څومره چې زر کیدے شي پیښور ته روانیږي او د هغه ځایے نه به هندوستان ته واپس کیږي.

(۲) سرداران دا لوظ کوي چې انګریزي فوځ ته به په لاره کښې څوک نقصان نهٔ ورکوي بلکې هغوي سره به د عزت سلوک کیږي او د باربرداري او د خوراک هر قسم ممکن امداد به ورله ورکیدے شي.

(۳) خو چې څهٔ وخت د سفیر (میکناټن) دا تسلي وشي چې د جلال اباد فوځ بې روکه ټوکه لاړ وهلے شي نو هغوي له به هم پیښور ته د تلو احکام ورکیدے شي.

(۴) کوم فوځونه چې په غزني کښې دي هغه به د کابل په لاره پیښور ته ځي خو چې څهٔ وخت د هغوي په حفاظت سره د تلو انتظام وشي.

(۵) کوم فوځونه چې دا وخت په قندهار کښې لا په بل ځایے د افغانستان په حدود کښې وي نو هغه به هم هندوستان ته واپس کیږي لا د کابل په لاره او لا د درهٔ بولان په لاره خو چې څهٔ وخت ضروري انتظامات مکمل شي او موسم د تلو دپاره مناسب وي.

(٦) د هر قسم مال او اسباب چې وروميے د دوست محمد خان ملکیت وو هغه به واپس

کیږي.

(۷) د برټش افسرانو نه هر قسم مال چې په افغانستان کښې پاتې شي هغه به په ډیر فکر محفوظ ساتلے شي. او څهٔ وخت چې موقع وي نو هندوستان ته به راستولے شي.

(۸) شاه شجاع الملک ته به اجازت وي چې لا هغه په افغانستان کښې پاتې شي او په دې صورت کښې به هغهٔ ته یو مناسب رقم چې د یو لک روپو سالانه نه به کم نهٔ وي په طور د ګزارې ورکیدے شي او لا هغه انګریزي فوځ سره هندوستان ته واپس لاړ شي.

(۹) د شاه د خاندان کوم خلق چې هغهٔ سره د تلو قابل نهٔ وي هغوي سره به هر قسم عزت او د درناوي سلوک کیدے شي. او هغوي ته به اجازت وي چې په بالاحصار کښې هغوي هم په هغه ځاے کښې وسیږي په کوم کښې چې هغوي دا وخت وسیږي. تر څو پورې چې هغوي هندوستان ته واپس شوے نهٔ وي بشرطیکه شاه انګریزي فوځونو سره واپس کیږي.

(۱۰) څهٔ وخت چې انګریزي فوځونه صحیح سلامت پیښور ته راورسیږي نو سمدستي به د دې خبرې انتظام کیدے شي چې امیر دوست محمد خان د هغهٔ اهل و عیال او هغه ټول پښتانهٔ چې په هندوستان کښې نظربند دي واپس افغانستان ته راشي.

(۱۱) خو چې څهٔ وخت امیر او د هغهٔ اهل و عیال کابل ته په واپسی کښې پیښور ته راورسي نو د شاه اهل و عیال ته به هم هندوستان ته د واپس تللو اجازت وي.

(۱۲) په برنو شرطونو باندې د پوره عمل درآمد کولو دپاره به شلور لوے برټش افسران په کابل کښې په طور د یرغمال پاتې کیږي. او چې څهٔ وخت امیر او د هغهٔ اهل و عیال پیښور ته راورسي نو دې شلورو افسرانو ته به هم هندوستان ته د واپس تللو اجازت وي.

(۱۳) سردار محمد اکبر خان، سردار محمد عثمان خان او نور داسې لوے لوے سرداران چې د چا خوښه وي هغوي به انګریزي فوځونو سره تر پیښوره پورې په ملګرتیا کښې ځي.

(۱۴) سره د دې چې انګریزي فوځونه د افغانستان نه واپس کیږي مګر بیا هم د فیرنګیانو او د پښتنو ترمنځه به د همیش دپاره دوستي وي تر دې حده پورې چې پښتانهٔ به هیڅ بهرني حکومت سره د فیرنګیانو د رضا نه بغیر د دوستی ډله نهٔ جوړوي او د ضرورت په وخت کښې به پښتانهٔ د فیرنګیانو نه د امداد طمع کوي.

(۱۵) کهٔ چرې د دې نه پس د پښتون قوم دا خواهش وي او د حکومت برطانیه هم دا خوښه وي نو یو انګریزي ریزیډنټ به په کابل کښې وسیږي د دې دپاره چې د دوارو حکومتونو په منځکښې دوستانه آمدورفت جاري وساتي مګر هغهٔ ته به د افغانستان په اندروني انتظام کښې د دخل ورکولو اختیار نهٔ وي.

(۱۶) هیچا ته به هم په دې وروستنی جګړه کښې د حصې اخستو په سبب څهٔ نقصان نهٔ شي ورکیدے او هر څوک چې انګریزي فوځ سره هندوستان ته د تلو خواهشمند وي نو هغهٔ

ته به اجازت وي.

(۱۷) د کوم تاریخ نه چې دا شرطونه فریقین منظور کړي د هغې تاریخ نه به سرداران مذکوره بالا دا ذمه واري اخلي چې انګریزي فوځونو ته به د خوراک سامان د قیمت په ادائیګۍ مهیا کیږي.

(۱۸) کوم برټش افسران لا د فوځ خلق چې په څهٔ وجه اوس سمدستي د افغانستان نه د وتلو قابل نهٔ وي نو هغوي سره به ښهٔ د عزت او د درناوي سلوک کیږي. او هغوي سره به د هر قسم امداد کیږي تر څو پورې چې د هغوي د تلو دپاره پوره انتظام نهٔ وے شوے او لا موسم ښهٔ شوے نهٔ وي."

د دې عهدنامې په یو څو شرطونو باندې محمد اکبر خان اعتراضونه وکړل مګر بالاخر د راضي نامې او د جوړې په خاطر د هغهٔ نورو ملګرو دا لوظنامه منظوره کړه او غازیانو سره کپتان ټریور په طور د یرغمال لاړو. پس د دې نه دا عهدنامه فیرنګیانو د شاه شجاع د ملاحظې دپاره ولیږله. او د سردارانو او د فیرنګیانو ترمنځه دا فیصله وشوه چې ټول انګریزي فوځ به درې ورځو کښې دننه د چاونۍ نه روانیږي. او د فیرنګیانو د نیک نیتۍ او د ایمانداریٔ د ثابتولو دپاره دا هم فیصله وشوه چې کوم انګریزي فوځ په بالاحصار کښې وسیږي هغه دې په دولسم دسمبر د بالاحصار نه راوځي او چاونۍ ته دې لاړ شي مګر د بعضې مشکلاتو په سبب په دې خبره په دغه ورځ عمل درآمد ونهٔ شو.

هم په دولسم دسمبر سرداران کابل میکناټن سره بیا مخامخ شول او ورته ئې دا خبره وکړه چې شاه شجاع دې بدستور د افغانستان بادشاه وي په شرط د دې چې هغه لویو لویو سرادران کابل سره د ښځو خپلوي وکړي او هغه د پښتنو لوے لوے خانان او سرداران په ګینټو ګینټو بهر په انتظار کښې نهٔ ودروي. شاه شجاع یو داسې بنیادم وهٔ چې د خپلو مصیبتونو او د تکلیفونو د تجربې نه به ئې هیڅرې فائده نهٔ وچتوله. اګرچې په ټول افغانستان کښې نهٔ خو د هغهٔ څهٔ اقتدار پاتې شوے وهٔ او نهٔ د هغهٔ د ملګرو فیرنګیانو مګر بیا هم د هغهٔ غرور او تکبر هغه په دې دواړو شرطونو کښې د یو شرط منلو ته هم نهٔ پریښودو ولې د خپلو مشیرانو په صلاح او مشوره هغه اخر دې دواړو شرطونو ته خپل څټ وغزولو.

په دیارلسم دسمبر دوه بجې د ورځې انګریزي فوځ د بالاحصار نه په راوتو ګوتې پورې کړې محمد اکبر خان سره د خپلو سړو د دې فوځ چاونۍ نه د راوستو دپاره بهر تیار ولاړ وهٔ مګر چونکې ورځې لنډې وے نمر زر پریوتو او د تیارې په وجه د سیاه سنګ د غونډو په خوا کښې په میدان باندې دیره شو. د سردۍ او د ګرم سامان د کموالي په سبب فوځ دا شپه په ډیر تکلیف او مصیبت په میدان کښې تیره کړه. سحر وختي په بله ورځ دا فوځ چاونۍ ته قریباً نهٔ بجې راننه وتلو. ولې د غازیانو یو بې قاعدې ټولي د محمد اکبر خان

د سخت احکاماتو برخلاف د دې فوځ په ورروستی حصه باندې حمله وکړه او د توپخانې یو
ګوره ئ قتل کړو.

دیخوا په چاونۍ کښې د خرڅ خوراک دومره کمے وۀ چې اسونو ته به په حکم سره
خپل خاشنهٔ دوه دوه ځل او درې درې ځل اچولے شول. ځکه چې د ګیاه خو نوم نۀ وۀ. او
کوم څاروي چې به د لوږې نه مړۀ شول نو په هغې به سپاهیانو ګزاره کوله. ځنې ځنې اسونو
ته به د ونو پوستکي د خوراک دپاره اچولے شول. بل خوا د کابل یخني او واورې وے او
دومره ډیرې واورې پریوتې چې انګریزي سپاهیانو ته د لوږې او د نهرې نه علاوه بیحده ډیر
تکلیف د یخ او څلې نه وشو. له دې کبله سردارانو اووۀ نیمې شلې منه اوړۀ چاونۍ ته
راواستول.

اکر کۀ فیرنګیانو او د سرداران کابل په منځکښې فیصله دا شوې وه چې انګریزي
فوځ به د یوولسم دسمبر نه پس په دریو ورځو کښې دننه چاونۍ پریږدي او د پیښور په
طرف به روانیږي مګر میکناټن به هره ورځ یوه بهانه لا په بله بهانه د کابل نه خپل روانیدل
ملتوي کول. اکبر خان د عهدنامې د شرطونو مطابق نصر الله خان د نواب زمان خان یو وررور
په طور د یرغمال (ضامن) هم چاونۍ ته راولیږلو ولې د میکناټن لا هم هغه شان د میکلارن د
بریګیډ د قندهار نه د راتلو طمع وه خو بالاخر په نولسم دسمبر هغۀ ته پته ولګیده چې د
میکلارن بریګیډ واپس قندهار ته ورسیدو او د واورو په وجه د هغۀ کابل ته راتلل ناممکن
دي. سره د دې هغۀ د یو لحظې دپاره هم د دې طمع قطعي کړې نۀ وه چې په هره وجه وي
چې انګریزان افغانستان کښې پاتې شي.

د سرداران کابل په اصرار باندې میکناټن او جنرل ایلفنسټن غزني، قندهار او جلال
اباد ته احکام واستول چې دا مقامات او علاقې دې انګریزي فوځونه خالي کړي مګر څۀ
وخت چې دا احکام هغې مقامي افسرانو ته ورسیدل نو هغوي ټولو د دې احکامو منلو نه انکار
وکړو بلکې هر یو بدستور خپل خپل استحکامات د راتلونکے مقابلې دپاره نور هم مضبوط
کړل. په دې ټوله عرصه کښې میکناټن په خپله باوجود د عهدنامې نه په رشوتونو او په نورو
ناجائزو طریقو سره په سرداران کابل او د افغانستان په نورو قبائلو کښې د بې اتفاقی او د
خانه جنګو د پیدا کولو کوششونه کول.

هغۀ غلجیانو او قزلباشو ته په دې شرط د لویو لویو رقمونو ورکولو وعده وکړه چې
هغوي د سرداران کابل خلاف بیا انګریزانو او شاه شجاع سره ملګرتیا وکړي. کۀ چرې په
دې دواړو قبیلو کښې هغه د یوې قبیلې هم ځان طرف ته په را اړولو کښې کامیاب شوے وے
نو بیا هغه د خپلې هغې عهدنامې نه چې کومه هغۀ د بارکزو سره کړې وه هیڅ پروا نۀ کوله. او
د هغۀ دا پوخ نیت وۀ چې زۀ به بیا جنګ کوم. هم دغه وجه وه چې هغۀ به هره ورځ خپل تلل

پـه څۀ نا څۀ بهانه ملتوي کول. ولې هر څومره چې هغۀ د افغانستان په نۀ پرېښودو کښې او په هغې بـانـدې د فـوځـي قـبـضـې سـاتـلـو کښې ايمانداری او د تهذيب ټول اصول بالائے طاق کښيښـودل هـم هـغـه هـومـره د هغۀ بدنيتي او بې اعتباري د هغۀ او د هغۀ د قوم دپاره د تباهی باعث شول.

دا هـم د ميـکـنـاټـن د بـدعهـدی او د بې اصولی نتيجه وه چې د پښتنو هيڅ اعتبار او عـقيده د هغۀ په خبرو او اقرارونو پاتې نۀ شوه. او هغوي به روزانه نوي نوي شرطونه فيرنګيانو تـه د افـغـانستان د خالي کولو په حقله پيش کول. اګرچې ميکناټن خپل ټول خط و کتابت د غـلـجو او د قزلباشو خپل طرف ته د را اړولو دپاره پټ ساتلو او د هغۀ الۀ کار موهن لعل وۀ او د هـغـۀ پـه ذريعه به ئې دې قامونو ته د رشوتونو ورکولو وعدې کولے. ولې دا ممکن نۀ وه چې سرداران کابل دې د دې ټولو معاملو نه بې خبره وے. هغوي ته به هم د ساعت ساعت خبرونه رسيدل. ځکه چې د غلجو لوي لوي مشران هغوي سره په دې تحريک کښې شامل وو. لکه اميـن الله خـان، مـحـمـد شاه خان، خدابخش خان، دغه شان خان شيرين خان د قزلباشو سردار هم د هغوي په ډله کښې شامل وۀ اګر چې د هغۀ راز باز د فيرنګيانو سره هم وۀ ولې د يوولسم دسمبر په عهدنامه کښې هغه هم شامل وۀ.

پـس د ميـکـنـاټـن دپاره اخلاقاً دا ډيره نامناسبه وه چې هغۀ د قزلباشو او د غلجو د را اړولو دپاره د يوولسم دسمبر د عهدنامې نه پس لوي لوي رقمونه خان شيرين خان او غلجو ته پيش کول. سر جان کے په خپل کتاب جلد دريم کښې په صفحه 295 فسټ افغان وار کښې د دې معاملې متعلق دا شان ليکي :

"Ostensibly Macnaughton at this time in treaty with the Barakzye party. But he was offering at the same time large sums of money to the Ghilzyes and to the Qazalbashes to side with the Shah and the British ; and if they had declared themselves openly on our side, he might have thrown over the Barakzye alliance. 'You can tell Ghilzyes and Khan Sherin' , he wrote on the 20th Dec. to Mohan Lal that after they have declared for His Majesty and us, and sent in one hundred Kharwars of grains to cantonments, I shall be glad to give them a bond for five Lakhs of Rupees; and if Naib Sharif is satisfied that they will do so he should advance to them as much money as he can. I fear for Mohd Shah that he is with Akbar, but you will know best. You must let me know before sunrise, if possible, what is likely to be the effect of this proposal, as I must talk accordingly to the Barakzyes who have shown no disposition to be honest. To save time, you may tell Khan Sherin to correspond with the Shah if there is a chance of success.

On the following day he wrote again to Mohan Lal, unfolding his views more distinctly with regard to the contemplated alliance with the Ghilzyes and Qazalbashes, out of which he still hoped that some thing might be evolved to avert

the retreat which was so loathsome to him. 'In conversing; he wrote , with anybody, you must say distinctly that I am ready to stand by my engagements with the Barakzyes and other chiefs associated with them; but that if any portion of the Afghans wish our troops to remain in the country, I shall think myself at liberty to break the engagement which I have made to go away, which engagement was made believing it to be in accordance with the wishes of the Afghan nation. If the Ghilzais and the Qazalbashes wish us to stay, let them declare so openly in the course of tomorrow , and we will side with them. The best proof of their wish for us to stay is to send us a large quantity of grain this night--one hundred or hundred Kharwars. If they do this , and make their Salam to the Shah early tomorrow, giving His Majesty to understand that we are along with them, I will write to the Barakzais and tell them my agreement is at an end; but if they ( Ghilzais and Qazalbashes ) are not prepared to go all length with us, nothing should be said about the matter, because the agreement I have made is very good for us.

An hour afterwards he wrote again to Mohan Lal, repeating all this in still more decided language, and declaring that if grain were obtained he should think himself at liberty to bread his agreement of going away on Friday , because that agreement was made under the belief that all the Afghan people wished us to go away. Do not let appear me in this matter , he wrote , in conclusion ;'Say that I am ready to stand by my engagement, but that I leave it to the people themselves'. And again after the lapse of another hour, he wrote; If any grain is coming in tonight, let me have notice of it a few minutes before. Anything that may be intended in our favour must appear before noon tomorrow."

ترجمه : "دا خبره ښکاره وه چې په دې ورځو کښې میکناټن د بارکزو فریق سره عهدنامه کړې وه ولې سره د دې هغهٔ لوے لوے رقمونه غلجو او قزلباشو ته په دې غرض پیش کول چې هغوي د بادشاه او د فیرنګیانو په ډله کښې شامل شي او کهٔ چرې هغوي ښکاره په ښکاره زمونږ په طرف شوے وے نو هغهٔ به بارکزو سره خپله عهدنامه ماته کړې وه. هغه په شلم دسمبر موهن لعل ته ولیکل چې تهٔ غلجو او خان شیرین خان ته وئیلے شے چې هر کله هغوي د اعلیٰ حضرت او زمونږ په ډله کښې د شاملیدو اعلان وکړي او یو سل خرواره غله چاونۍ ته راواستوي نو زهٔ به په ډیرې خوشحالۍ هغوي له د پنځو لکو روپو دستاویز ورکړم او کهٔ نائب شریف په هغوي باندې تسلي وي چې هغوي به مونږ سره شامل شي نو هغه دې هغوي له هر خومره روپۍ چې هغه ورکولے شي ورکړي. زهٔ په محمد شاه ویریږم چې هغه د اکبر ډله ده مګر دا به تاته ډیره ښه معلومه وي. تهٔ ماله کهٔ چرې ممکن وي نو ضرور د نمر ختو نه وړومبے اطلاع راکړه چې د دې تجویز به څهٔ اثر وي ځکه چې زهٔ به بیا د بارکزو سره چې چا تراوسه هیڅ دیانتداري نهٔ ده ښودلے خبرې کوم. د وخت د بچ کولو دپاره تهٔ شیرین خان ته ووایه چې هغه شاه سره خط و کتابت وکړي کهٔ چرې د کامیابۍ څهٔ امید وي.

پـه بـلـه ورځ هـغـهٔ بیـا مـوهـن لـعـل ته خط ولیکلو او په دې خط کښې هغهٔ غلجو او قـزلبـاشو سره د دې مجوزه اتحاد جوړولو متعلق خپل خیالات لږ نور په وضاحت سره ښکاره کړل. چونکې هغه د افغانستان نه د وتلو نه سخت متنفر وهٔ نو د هغهٔ دا طمع وه چې شاید د دې اتـحـاد نـه څـهٔ داسـې واقعات راپیدا شي چې د هغې په سبب زمونږ د دې ملک نه واپس تلل پـاتـې شي. هغهٔ موهن لعل ته ولیکل چې هر چا سره چې تهٔ خبرې کوې نو تهٔ هغهٔ ته ، وایه چې زهٔ بـار کـزو او د هـغـوي ملګرو سردارانو سره په خپل اقرار باندې ودریدو ته تیار یم. مګر کهٔ چـرې د پښتنو یو جزو دا غواړي چې زمونږ فوځونه دې په دې ملک کښې پاتې شي نو بیا زهٔ خپـل ځـان ازاد ګـنم چې د دې ملک د پریښودو اقرار مات کړم. ځکه چې دا اقرار ما په دې خیـال کـړے وهٔ چـې ګـنـې دا د ټـول پښتـون قـوم مـطالبه ده نو کهٔ چرې غلجي او قزلباش دا غـواړي چـې مـونـږ دې پـاتـې شو نو هغوي له په سبائی ورځ کښې د دې خبرې ښکاره اعلان کـول پـکـار دي. او بیـا بـه مـونـږ د هغوي په طرف شو. د دې خبرې بهترین ثبوت چې هغوي زمونږ پاتې کیدل په دې ملک کښې غواړي دا دے چې هغوي نن شپه کښې مونږ له ډیره غله یعنې سل یا دوه سوه خرواره غله چاونۍ ته راورسوي کهٔ چرې هغوي دا وکړل او سبا سحر له د شـاه سـلام لـه راغـلل او اعلیٰ حضرت له ئ دا یقین ور کړو چې مونږ هغوي سره یو نو زهٔ به بـار کـزو تـه ولیـکـم او ورتـه بـه ووایـم چې زمونږه اقرار نامه ختمه شوه ولې کهٔ چرې هغوي (غـلـجـي او قـزلباش) مونږ سره پوره پوره ملګرتیا ته تیار نهٔ وي نو بیا د دې معاملې متعلق نور هیڅ وئیل پکار نهٔ دي. ځکه چې کومه اقرارنامه ما کړې ده هغه زمونږ دپاره ډیره ښه ده.

د دې نه یوه ګینټه پس هغهٔ بیا موهن لعل ته خط ولیکلو او دا ټولې خبرې ئ هغهٔ ته په نـورو واضـحو الفاظو کښې دوباره بیان کړې او ورته ئ ووې کهٔ چرې غله په لاس راتلے شي نو بیا د جمعې په ورځ د روانیدو لوظ زهٔ ماتولے شم ځکه چې دا اقرار ما په دې خیال کړے وهٔ چې د پښتنو ټول قوم دا غواړي چې مونږ دې لاړ شو. په اخر کښې هغهٔ ورته ولیکل چې ما په دې معامله کښې چا ته مهٔ ښکاره کوه تهٔ دا خلقو ته وایه چې زهٔ خو په خپل لوظ ټینګ یم ولې دا معامله زهٔ هم دې خلقو ته پریږدم او بیا یوه ګینټه پس هغهٔ موهن لعل ته ولیکل چې کهٔ چرې څهٔ غلـه نن شپه راځي نو یو څو منټه وړومبے ماته خبر راکړه هر څهٔ چې څوک زمونږ په حق کښې کول غواړي نو سبا له د غرمې نه دې وړومبے وړومبے ښکاره کړي.''

پـه کـومه ورځ چې میکناټن موهن لعل سره په دا قسم خط و کتابت کښې اخته وهٔ نو هم په هغه ورځ سرداران کابل بیا میکناټن سره د نهر په غاړه جرګه شول او د میکناټن نه ئ د مـلـک د پریښودو په حقله نورې ذمه وارۍ طلب کړې. هر څومره چې میکناټن د غلجو او د قـزلبـاشـو ځان ته د را اړولو کوشش کولو او دا ئ غوښتل چې په څهٔ چل هنر باندې فیرنګیان بیـا پـه افـغانستان کښې پاتې شي هم هغه هومره سرداران کابل د هغهٔ په ذې کوششونو باندې

خبریدل او د هغهٔ نه به ئ نورې سختې ذمه وارۍ غوښتلې. سرداران کابل به د خپلې عهدنامې د شرطونو مطابق انګریزي فوځ ته خوراک لږ لږ صرف د دې ویرې وراستولو چې د هغوي دا یقین وۀ چې کۀ چرې یو ځل ډیره غله د هغوي لاس ته راشي نو هغوي به په خپله عهدنامه باندې پښیمانه شي.

د دې برخلاف میکناټن ځان له بغیر د سرداران کابل د وساطت نه د ډیرې غلې د را یو ځاے کولو کوشش کولو او دغه ئ خیال وۀ چې په څۀ وزن هغه عهدنامه چې ما د افغانستان نه د وتلو په حقله کړې ده د پښتو لاندې کړم. چنانچه میکناټن په روپو باندې غله خو ډیره راجمع کړه مګر نۀ خو غلجي هغۀ سره په ډله شو او نۀ قزلباش. د دې ټولو واقعاتو په بنا باندې د سرداران کابل په دې یقین راغے چې میکناټن د کابل نه د تلو اراده بالکل نۀ لري پس د نورو تجویزونو نه علاوه هغوي د میکناټن نه دا مطالبه هم وکړه چې خپل ټول سامان جنګ مونږ ته حواله کړي او یو څو وادۀ کړي افسران په طور د یرغمال مونږ ته حواله کړي. مجبوراً په یویشتم دسمبر لفټیننټ جے بي کنولي او لفټیننټ ایري چې د جنرل ایلفنسټن ایډې کانګ وۀ کابل ته په طور د یرغمال واستولے شول. او لفټیننټ ایري د دې دپاره مقرر شو چې د نواب زمان خان یو افسر دې د انګریزي فوځ په سامان جنګ باندې د دې غرض دپاره وګرځوي چې کومه کومه اسلحه چې د هغوي خوښه وي هغه ځان سره کابل ته یوسي.

اوس میکناټن ته دا معلومه شوه چې د فائدې په ځاے ما خپل قوم ته په دې دورنګی څومره لوے نقصان ورسولو هغۀ د خپل ځان د بچ کولو دپاره په دوؤ بیړو پښې کښیښودے او دواړه بیړۍ د هغۀ د پښو نه وخوئیدے او نۀ صرف هغه بلکې د هغۀ ټول ملګري هم په سیند لاهو شول. هغۀ اوس دا محسوسه کړه چې نۀ خو مې قزلباش او غلجي وخویول او نۀ مې په بارکزو څۀ مخ پریښودو هغۀ بیا د دې بد دیانتۍ د رویې نه وروستو کیدل غوښتل ولې اوبۀ د ورخه تیرې وے او بارکزي او د هغوي ملګري سرداران په هغۀ باندې یوه ذره هم نور باور کوو ته تیار نۀ وو. سر جان کے مخکښې په صفحه 297 دا رنګ لیکي :

"He ( Macnaughten ) was now beginning to despair of deriving any real assistance from the Ghilzais, who were slow to declare themselves openly on our side, and he saw plainly how dangerous it was to appear to be in treaty with them and the Barakzyes at the same time. Some doubts, too of the honesty of the course he was pursuing began to obstrude themselves upon him; and he wrote accordingly to Mohan Lal, requesting him to instruct the Ghilzyes not to send in any grain until further advised upon the subject. The sending of grain to us just now, he said, 'would do more harm than good to our cause; and it would lead the Barakzyes to suppose that I am intriguing with a view of breaking my agreement so long as all the Khawanin wish me to stand by it . Pray thank our friends, nevertheless, for their kind attention to our interest. I wish very much to please them, and am sorry my

treasury is so empty."

On the same day Macnaughten sent 7000 rupees to Khan Sherin Khan, the chief of the Qazalbashes, but urged Mohan Lal to keep it secret,as there was scarcely any money left. He had become doubtful by this time of the honesty of intriguing with one party, whilst he was bound by engagements to another. So he urged the moonshee to tell the Ghilzyes to send him no more grain. 'If, he wrote on the 22nd of December, 'while our present agreement lasts I were to receive a large supply of grain from the Ghilzyes, suspicion would be raised that I intended to break my engagement and wish to keep troops here, inspite of the wishes of all the chiefs to the contrary. It would be very agreeable to stop here for a few months instead of having to travel through the snow; but we must not consider what is agreeable, but what is consistent with our faith."

ترجمه : "اوس د میکناټن د غلجو نه د حقیقي امداد حاصلولو طمع قطع کیدله ځکه چې هغوي زمونږ ډله کښې علي الاعلان شاملیدل نۀ غوښتل او هغۀ ته دا ظاهره باهره معلومه شوه چې هم غلجو سره او هم بارکزو سره په یو وخت په اتحاد کښې پاتې کیدل څومره خطرناک دي. هغۀ ته د خپلې رویې چې کومه هغۀ اختیار کړې وه د دیانتدارۍ متعلق هم شکونه پیدا شول او له دې کبله هغۀ موهن لعل ته ولیکل چې تۀ غلجو ته ووایه چې تر څو پورې چې هغوي ته بیا وینا نۀ وي شوې نو تر هغې پورې دې غله نۀ رالیږي هغۀ ورته دا هم ولیکل چې دا وخت د غلې رالیږل زمونږ کار ته د فائدې په ځاې نقصان ورکوي. او په دې به د بارکزو دا خیال پیدا شي چې زۀ د خپل اقرار د ماتولو دپاره خلقو سره سازشونه کوم مګر هرکله چې ماته ټول خوانین وائي چې تۀ په دې اقرار ودرېږه نو زۀ به هیچرې هم هغه اقرار مات نۀ کړم مګر بیا هم تۀ دپاره د مهربانۍ زمونږ د دې دوستانو شکریه ادا کړه چې تاسو زمونږ فائدې ته دومره توجه کړې ده زما ډیر خواهش دے چې زۀ هغوي خوشحاله کړم خو افسوس دے چې زما خزانه خالي ده.

هم په دغه ورځ میکناټن اووۀ زره روپۍ خان شیرین خان د قزلباشو سردار له ولیږلې مګر موهن لعل ته ئ ووئیل چې دا خبره بالکل پټه وساته ځکه چې روپۍ بالکل نشته. هغۀ ته دا وخت د دې پالیسۍ د دیانتدارۍ متعلق شکونه پیدا شوي وو چې یو فریق سره خو ما عهدنامه کړې ده او بل سره زۀ سازشونه کوم. له دې کبله هغۀ منشي ته ووئیل چې غلجیانو ته ووایه چې نوره غله نۀ رالیږي. هغۀ په دویشتم دسمبر هغۀ ته ولیکل کۀ چرې د موجوده عهدنامې په دوران کښې ماله د غلجو د طرف نه غله په ډیر مقدار کښې راورسي نو دا شک به پیدا شي چې زۀ خپل اقرار ماتول غواړم او سره د دې چې ټول سرداران دا غواړي چې مونږ دې لاړ شو نو زۀ خپل فوځونه په دې ملک کښې غواړم دا به ډیره غوره وه کۀ چرې مونږ په واورو کښې د مزل کولو په ځاې یو څو میاشتې دلته پاتې شوې وے مګر مونږ له هغه

کول پکار نهٔ دي چې کوم مونږ ته غوره ښکاري. بلکې هغه کار پکار دے چې کوم زمونږ د اقرار سره مطابق وي.''

کومه بې اعتباري چې اوس د سرداران کابل په میکناټن باندې پیدا شوې وه هغې سرداران کابل دې خبرې ته مائل کړل چې د میکناټن د دیانتدارۍ او د هغهٔ د لوظ د پابندۍ امتحان واخلي. پس هغوي یوه لويه جرګه وکړه او په مصلحت او مشورې سره ئې محمد اکبر خان ته د دې امتحان د اخستلو اختیار ورکړو او معلومیږي چې کومه مسوده د دې ازمیښت د کولو دپاره جوړه شوې وه د هغې په تیارۍ کښې ټول سرداران شامل وو. اوس محمد اکبر خان په ډیر چل او هنر باندې په دې مسوده عمل شروع کړو. هغهٔ وړومبے کپتان سکنر چې د هغهٔ په کور کښې د هغهٔ د حفاظت د لاندې وسیدلو څان له پټ جرګه کړو او هغهٔ ته ئې ووئیل چې زهٔ یواځې څان له میکناټن سره یوه بله خفیه عهدنامې کولو ته تیار یم او دا ټول بغاوت او د ازادۍ جنګ ختموم بشرطیکه ماله د شاه شجاع د وزارت عهده راکړې شي او څهٔ نغد رقم هم په لاس راشي. چنانچه د مزید خبرو اترو نه پس هغهٔ کپتان سکنر له یو تحریري مسوده د مجوزه عهدنامې ورکړه او ورته ئې ووئیل چې کهٔ میکناټن ته دا شرطونه منظور وي نو هغه دې په دې عهدنامې باندې دستخط وکړي . د دې مجوزه عهدنامې شرطونه دا وو :

(۱) محمد اکبر خان به امین الله غلجے (چې د دې انقلاب یومعتبر او بارسوخ مشر وهٔ) د دې عهدنامې د کیدلو نه په دویمه ورځ ګرفتاروي او انګریزانو ته به ئې حواله کوي.

(۲) د فیرنګیانو یوه پلټن به سمدستي د محمد خان په قلعه باندې قبضه کوي او یوه پلټن به په بالاحصار .

(۳) شاه شجاع به بدستور بادشاه وي او محمد اکبر خان به د هغهٔ وزیر وي.

(۴) انګریزي فوځونه به تر مخکښې سپرلي پورې په افغانستان باندې بدستور قبضه لري.

دا مجوزه عهدنامه چې کپتان سکنر میکناټن ته وښودله نو د هغهٔ په زړهٔ کښې په افغانستان کښې د پاتې کیدلو یوه نوې طمع راپیدا شوه او د هغهٔ په مړاوي زړهٔ کښې بیا ترو تازګي ښکاره شوه. د هغهٔ د یوې لحظې دپاره هم دا شک پیدا نهٔ شو چې ګنې سرداران کابل زما د امتحان اخستو دپاره ماته دا یوه کوړکی ایښې ده څکه چې ټول عمر هغهٔ پښتانهٔ د روپو او د عهدو او منصبونو په لالچ د قومي فائدو د لټولو نه بیرته ساتلي وو. د هغهٔ بالکل دا یقین او تسلي وه چې محمد اکبر خان د وزارت د عهدې حاصلولو دپاره د نورو سردارانو ملګرتیا پریښودلو ته تیار دے. او د خپل غرض او د فائدې دپاره د دې تحریک د بیخ ویستلو خواهش مند دے. لا تر دې وخته پورې میکناټن د پښتنو دیانتدارې طبقې او قوم پرست او محبان وطن ټولي سره د ملاقات اتفاق نهٔ وهٔ شوے او د هغهٔ دا یقین وهٔ چې هر کله د

پښتـون په مخکښې ذاتي مفاد د قومي مفادو په مقابله کښې راشي نو هغه همیش په خپله ذاتي فـائـده باندې قومې فائدې قربان کړي دي. محمد اکبر خان هغهٔ د دې قاعدې کلیه نه مستثنې نـهٔ ګڼلو. پس هغهٔ فوراً په دې بله عهدنامه باندې دستخط وکړو او د یوولسم دسمبر عهدنامه ئې شـاتـه وغـورځوله. د میکناټن مثال د هغې ډوبیدونکي سړي وهٔ چې د خپل ځان د بچ کولو دپاره ئې وښو ته هم لاس اچولو.

پـه افغانستان کښې انګریزي حکومت د قائمولو خیال په ابتدا کښې هم د میکناټن د دمـاغ نتیجـه وه او هـم د هـغـهٔ پـه تـجویز باندې د هندوستان دومره مال او فوځ افغانستان ته راغـلـے وهٔ هـرکـلـه چې د هغهٔ دا ټوله پالیسي ناکامیابه شوه نو هغهٔ خپل وقار او خپل حیثیت بـالـکـل تبـاه او بـربـاد ولیدو. د محمد اکبر خان د تجویز مطابق د هغهٔ دا وقار او عزت تر ځهٔ حـده پـورې د مـکـمـل تبـاهـی نـه بـچ کیـدے شو هم په دې لالچ او هم په دې طمع هغه نورو سردارانو سره بالکل عهدشکنی ته تیار شو او د محمد اکبر خان په مجوزه عهدنامې باندې ئې دسـتـخـط وکړو دا دسـتـخـط شـوې عهدنامه چې محمد اکبر خان ته واپس شوه نو هغهٔ ټولو سـردارانـو تـه ښکاره کړه او د هغوي د حیرت او په انګریزي افسرانو باندې د بې اعتباری ځهٔ حد پاتې نهٔ شو. لفټیننټ ایري د دې واقعې متعلق په خپل کتاب کښې دا شان ذکر کوي:

"In a fatal hour he signed his name to a paper consenting to the arrangement---His doom was sealed. The whole was a scheme got up by the chiefs, to test his sincerity."

تـرجـمـه : ''د تباهـی پـه یـوه ګـړی کښې هغهٔ په یو کاغذ باندې خپل دستخط وکړو او هغه تـجـویـزونـه ئې مـنـظـور کـړل اوس د هغهٔ د قسمت فیصله وشوه. په حقیقت کښې دا ټوله معـامـلـه یوه منصوبه وه چې سرداران کابل د هغهٔ د ایمانداری د امتحان اخستلو دپاره جوړه کړې وه.''

پـه دې واقعاتو کښې سرداران کابل دا فیصله وکړه چې د یوولسم دسمبر د عهدنامې په شرطونو باندې د عمل کولو دپاره میکناټن په خپله په طور د یرغمال د فیرنګیانو نه اخستل ضروري دي. ځکه چې د هغوي اوس دا یقین وشو چې دا هم میکناټن دے چې د افغانستان په پـریښودو په هیڅ وجه باندې رضا نهٔ دے پس هغوي دا تجویز وکړو چې کهٔ چرې میکناټن په خپـلـه رضـا پـه طـور د یـرغـمـال نهٔ راځي نو هغه دې په زور باندې ښار ته راوستے شي. د دې غـرض دپـاره هـغـوي په چاونی باندې خو بیا حمله کول نهٔ غوښتل ځکه چې دا به د عهدنامې خـلاف ورزي وه خـو هـغـوي یـو بل چل د میکناټن د راوستو دپاره جوړ کړو. د دې چل ذکر کپتان میکنزي په خپل یو خط کښې چې هغه بیا ایري ته لیکلے وهٔ کړے دے.

دا خـط خـو ډیـر وړد دے خـو د هـغـې خلاصه دا ده چې د درویشتم دسمبر په ماښام کپتـان سـکنر سره د محمد صدیق خان چې د محمد اکبر خان د ترهٔ زوے وهٔ د کابل د ښار نه

چاونۍ ته راغلل دوئ سره سرور خان لوهاني يو لوۍ سوداګر چې د برنس ډير اعتباري سړے وۀ او فيرنګيانو ډير خيرخواه وۀ هم ملګرے وۀ. سکنر ميکناټن سره جدا ډوډۍ وخوړله اود محمد اکبر خان په عهدنامه باندې ئ د عمل درآمد دپاره د نورو تجويزونو د جوړولو خبرې اترې وکړې او ورته ئ ووئيل چې دا دواړه سړي د محمد اکبر خان د طرف نه تا سره د باقاعده جرګې کولو دپاره ما راوستي دي د ډوډۍ نه پس ميکناټن ، سکنر، محمد صديق خان او سرور خان لوهاني جرګه وکړه د مزيد تفصيلاتو د ذکر نه پس محمد صديق خان علاوه د هغې څلورو شرطونو نه چې د کومو بره ذکر شوے دے ميکناټن ته دا شرط هم پيش کړو چې کۀ چرې دا عهدنامه د هغۀ او د محمد اکبر خان په مابين سر ته ورسيده نو فيرنګيان به محمد اکبر خان له ديرش لکه روپۍ په يو ځاے او څلور لکه روپۍ سالانه د هغۀ تر ژوندانۀ پورې ادا کوي. چنانچه په دې ټولو شرطونو باندې ميکناټن يو ځل بيا په فارسي کښې نۀ تش دستخط وکړو بلکې دا ئ هم وليکل چې د دې عهدنامې په ذريعه باندې د انګريزي حکومت اصلي مدعا پوره کيږي.

د دې نه پس بيا دا خبره طے شوه چې سبا له دې ميکناټن او محمد اکبر خان په خپله سره د خپلو يو څو ذاتي دوستانو د چاونۍ نه بهر ملاقات وکړي. ميکناټن د دې ټولې معاملې واقعات يعني د مجوزه عهدنامې شرطونه او د سبا د ملاقات تجويز د خپلو ملګرو او د فوځ د افسرانو نه پټ وساتل مګر په دويمه ورځ يعني په درويشتم دسمبر ميکناټن سحر وختي کپتان ټريور، کپتان لارنس او کپتان ميکنزي راوبلل او ورته ئ ووئيل چې تاسو محمد اکبر خان سره د جرګې کولو دپاره ما سره په ملګرتيا کښې لاړ شئ او بيا ئ دغه وخت کپتان ميکنزي سره د دې نوې عهدنامې ذکر وکړو.

د دې نه پس ميکناټن جنرل ايلفنسټن ته پيغام وليږلو چې هغه دې 54 نمبر پلټن د ميجر يورټ د کمان لاندې او د شاه شجاع شپږم نمبر پلټنې او دوه توپې دې د فوځي کارروايۍ دپاره بالکل تيارې وساتي. د ميکناټن دا مدعا وه چې دا فوځ به سمدستي د محمد اکبر خان د عهدنامې دويم شرط مطابق په محمد خان قلعه او په بالاحصار قبضه کوي. د ميکناټن د دې تجويز په جواب کښې ايلفنسټن هغۀ ته وليکل چې په بالاحصار او په محمد خان قلعه باندې دا مجوزه حمله د خطرې نه ډکه ده. له دې کبله د دې پلټنو د دې کار دپاره ليږل د فوځي نقطۀ خيال نه نامناسب دي. پس جنرل موصوف د دې فوځ د ليږلو متعلق هيڅ احکام صادر نۀ کړل. د ايلفنسټن دا جواب ميکناټن ته په څۀ نامعلومه وجوهاتو هډو را ونۀ رسيدو او هغه په دې خيال کښې پاتې شو چې جنرل ايلفنسټن به زما د پيغام مطابق ټول انتظام پوره کړے وي. قريباً دولس بجې د ورځې ميکناټن، ټريور، لارنس او ميکنزي د چاونۍ نه بهر محمد اکبر خان سره د جرګې په غرض روان شو.

هر کله چې دا ټولې د چاوڼی نه بهر ووتلو نو میکناټن ته دا معلومه شوه چې جنرل ایلفنسټن د هغهٔ د پیغام مطابق فوځ نهٔ دے تیار کړے چنانچه هغهٔ بیا یو ضروري خبر هغهٔ له ولیږلو چې اګر کهٔ زما د حملې تجویز خطرناک دے ولې بیا هم په دې باندې ډیر ځهٔ داؤ کول مناسب دي. د داسې ژوند نه مرګ یو زر درجې بهتر دے. میکناټن او د هغهٔ ملګري او د هغهٔ باډي ګارډ د محمد خان قلعه په طرف د چاوڼی نه قریباً پنځهٔ لا شپږ سوه قدمه نمرخاتهٔ ته محمد اکبر خان سره د جرګې کولو په غرض لاړل. لږ ساعت پس محمد اکبر خان سره د نورو خانانو راورسیدو. د یو غونډۍ دپاسه په یو صاف ځاے قالین وغوړولے شو او ټول جرګې ته کښیناستل. محمد اکبر خان د خانانو په مخکښې میکناټن ته ووئیل چې ولې د بیګانی شپې عهدنامې کولو ته تیار ئ او کهٔ نه؟ میکناټن ورته ووئیل چې ولې نه. په دې کښې هغوي لا نورې خبرې کولے چې د غازیانو مسلح ټولې د دې ټولې ډلې نه راچاپیره شو.

ځهٔ وخت چې دا ټولے پوره طور سره د دوئ نه راتاؤ شو نو محمد اکبر خان ناساپه اواز وکړو چې ''بګیربګیر'' او په خپله ئ میکناټن د ګس لاس نه او سلطان جان هغه د ښي لاس نه راونیولو او سمدستي ئ په راښکلو راښکلو د غونډۍ د سر نه راکوز کړو. میکناټن اوس پوهه شو چې دا خو ټول زما د نیولو دپاره چل جوړ شوے وهٔ هغه د حد نه په هورته متحیر شو او ویرې واخستو او محمد اکبر خان ته ئ ووئیل چې از براے خدا دغه شان محمد شاه خان لارنس ته اواز وکړو چې ما پسې راځه کهٔ چرې ځان دې خوښ وي او په راښکلو راښکلو ئ محفوظ ځان سره بوتلو.

ځهٔ وخت چې دا جرګه د غونډۍ په سر کیدله نو بیشانه ډیر غازیان سره د وسلې چارچاپیره په لارو او میدانونو کښې راجمع شوي وو هر کله چې محمد اکبر خان او د هغهٔ ملګرو د فیرنګیانو دې ټولې ته لاس وروراچولو نو قدرتي طور سره د دې غازیانو په زړهٔ کښې دا خیال پیدا شو چې جګړه شروع شوه او هر یو غازي خپلې وسلې ته لاس کړو او په دې فیرنګیانو باندې ئ حمله وکړه. دیخوا محمد اکبر خان او د هغهٔ ملګرو انتهائي کوشش د دې خبرې کولو چې دا فیرنګیان د غازیانو د لاسه قتل نهٔ شي مګر د میکناټن او د کپتان ټریور د خلې ناپوهي او د ضد نه هغوي د محمد اکبر خان د سخت کوشش باوجود د غازیانو د لاسه قتل شول.

میکناټن چې ځهٔ وخت محمد اکبر خان او سلطان جان ښار ته د بوتلو دپاره راونیولو نو اس باندې ئ ځان پسې سورولو مګر هغهٔ په دا وخت مقابله شروع کړه او په محمد اکبر خان ئ حمله وکړه په دې کښې نور غازیان راورسیدل او هغوي ټولو میکناټن قتل کړو. کپتان ټریور دوست محمد خان ځان پسې په اس باندې سور کړو او د محمد خان قلعه ته ئ روان کړو چې هغه د دوست محمد خان نه وغورځیدو او هم په هغه ځاے غازیانو د لاسه هغه

هم قتل شو. کپتان میکنزي نه هم سمدستي غازیان راچاپیره شول مګر غلام معین الدین چې د انګریزانو په حکومت کښې د کابل د پولیس افسر وۀ هغۀ دې د ورومبې نه په خپل حفاظت کښې اخستې وۀ او میکنزي هم د هغۀ د حفاظت نه فائده وچتول غوښتل. چنانچه څۀ وخت چې غازیانو په هغۀ باندې حمله شروع کړه نو غلام معین الدین په ډیرې بهادرۍ د هغوي ټولو مقابلې ته ودریدلو او بیا ئې د هغوي د دائرې نه راوویستو او د محمد خان قلعه ته ئې روان کړو. غازیانو هغۀ پسې چغې وویستلې چې دا کافر مړ کړئ او بیا ئې ورپسې وردؤ کړو او د تورو بیشماره ګوزارونه دې خلقو په هغۀ باندې وکړل مګر غلام معین الدین هغوي ته خپل پټکے کوز کړو او ورته منت ئې وکړو چې زما دوست مۀ وژنئ. اخر د ډیر کوشش نه پس هغۀ میکنزي د دې هجوم نه راخلاص کړو او د محمد خان قلعه ته ئې رانزدې کړو. مګر په دې ځاے کښې د غازیانو بل یو جمعیت را یو ځاے شوے وۀ او بیا ئې په میکنزي باندې حمله کوله مګر په دې اثنا کښې محمد اکبر خان د میکناټن او د ټریور د مرګ نه پس رارسیدلے وۀ هغۀ توره راوښکله او چارچاپیره ئې په غازیانو باندې ګوزارونه وکړل او غازیان ئې میکنزي ته د رانزدې کیدو نه منع کړل. میکنزي خپله د خپلو بچ کیدو قصه دا شان بیانوي:

" I must do Mohammad Akbar the justice to say, that finding the Ghazies bent on my slaughter even after I had reached his stirrup, he drew his sword and laid about him right manfully, for my conductor and Mirza Bahauddin Khan were obliged to press me up against the wall, covering me with their own bodies, and protesting that no blow should reach me, but through their person."

ترجمه: "ماله د محمد اکبر په حقله د انصاف دا خبره پکار ده چې هر کله هغۀ ولیدل چې غازیان زما په قتل پسې دي حالانکې زۀ دغه وخت د هغۀ رکابونو ته ورسیدلے وم نو هغۀ خپله توره راوویسته او ښۀ په نرتوب ئې چارچاپیره ګوزارونه وکړل ځکه چې زما بوتلونکے اومرزا بهاوالدین خان په دې لاچار شول چې ما په دیوال کښې ورومنډي بیا هغوي خپل ځانونه زما مخې ته ودرول او غازیانو ته ئې ووئیل چې هر څوک چې په ما (یعنې په میکنزي باندې) ګوزار کوي نو هغوي به ورومبے مونږ وژني."

هر کله چې محمد اکبر خان او د هغۀ ملګرو کپتان میکنزي د غازیانو د غصې نه خلاص کړو نو میکنزي وائي چې په محمد اکبر خان باندې د نیک خلقی په ځاے د فخر جذبې غلبه وکړه او ماته ئې په فاخرانه تمسخر کښې ووئیل " شما ملک ما میګیر ید؟ د دې نه پس اکبر خان په اس سور لاړو اومیکنزي ئې د قلعې د دروازې پورې ورسولو. د بدې ورځې نه دغلته یو سړے ملا مومین نومے سره د خپلو ملګرو ولاړ وۀ تورې ئې په لاس کښې وے خو چې میکنزي ئې ولیدو نو سمدستي ئې خپلو ملګرو ته ووئیل چې وهی ئې دې وینا سره ټول په هغۀ راپریوتل. ولې محمد شاه خان د غلجو سردار او د هغۀ ملګري د هغۀ امداد ته

راورسیدل. میکنزي مخکښې په خپله دا شان وائي :

"These drew their swords in my defence, the chief himself throwing his arm round my neck, and receiving on his shoulder a cut aimed by Mullah Momin at my head."

ترجمه : "دې کسانو خپلې تورې زما د بچاؤ دپاره راوښکلې او سردار په خپله خپل لاس زما په څټ راواچولو او کوم ګوزار چې ملا مومین زما په سر باندې کولو هغه ئ په خپله اوږه باندې واخستو او زخمي شو.،،

په دغه هله ګوله کښې محمد شاه خان وغیرؤ میکنزي قلعه ته دننه کړو او تر ډیره وخته پورې هغوي د هغهٔ د حفاظت دپاره په قلعه کښې ناست وو چې په دې کښې امین الله خان غلجے راغلو. دغه امین الله د میکناټن د دې دویمې عهدنامې په وړومبني شرط باندې د اور لمبه وهٔ خو چې میکنزي ئ ولیدو نو قدرتاً هغه د غصې نه بیخوده شو او ورته ئ ووئیل چې اوس مو وژنم په دې باندې د هغهٔ ملګري په هغهٔ باندې بالکل حملې ته تیار شو مګر محمد شاه خان او دوست محمد خان هغهٔ ته منت وکړو چې دا شان خبرې مهٔ کوه او هغه ئ په نرمو نرمو خبرو باندې بهر ته وښکلو. غازیانو چې میکناټن قتل کړو نو د هغهٔ سر ئ د تن نه جدا کړو او په ټول ښار کښې ئ وګرځولو او د هغهٔ او د کپتان ټریور نعشونه ئ په چوک کښې زوړند کړل.

دې کښې هیڅ شک و شبه نشته چې څهٔ وخت محمد اکبر خان او د هغهٔ ملګرو میکناټن ته د جرګې دعوت ورکړے وۀ نو د هیچا هم دا اراده نهٔ وه چې هغه لا د هغهٔ په ملګرو کښې دې څوک قتل کړې شي بلکې اصلي مدعا د محمد اکبر خان او د هغهٔ د ملګرو دا وه چې میکناټن دې تر هغه وخته پورې سرداران کابل په لاس کښې یرغمال وي تر څو چې انګریزي فوځ د افغانستان نه وتے نهٔ وي. مګر چونکې د ازادۍ دا تحریک زیات تر د اولس خلقو چلولو او غیر منظم قبائل په کښې شامل وو له دې کبله د انقلاب د مشرانو په هغوي باندې ډیر کم قابو او ضبط وۀ. دا د هر یو انقلاب حال وي. په هر انقلاب کښې نهٔ خو منظم فوځونه موجود وي او نهٔ باقاعده حکومت. لازمي طور باندې د هر ورکوټي او لوي ټولي مشر خان خان له د ضرورت وخت هم قانون وي او هم حاکم. نتیجه ئ دا وي چې هر څومره کهٔ د یو انقلاب مشران په خپله اعتدال پسند، قابل او د عدل و انصاف خاوندان وي. خو د عامو خلقو نه چې چا په هغې انقلاب کښې حصه اخستې وي ضرور څهٔ نا څهٔ زیاتے او بې انصافي کیږي.

میکناټن او ټریور خو دواړه د خپل ضد او د خشنګتوب په وجه ضائع شو. هر کله چې د انقلاب لویو لویو مشرانو د میکنزي او د لارنس غوندې د معمولي افسرانو د حفاظت دپاره د غازیانو د جوش او د غیظ و غضب مقابله کوله او ځان ئ د هغوي په خاطر په خطره

کبنې اچولو نو د میکناټن او د ټریور دپاره به هم هغوي خپل انتهائي کوشش کړے وۀ مګر هغوي دواړو په خپل خلاصي کبنې د غازیانو مشرانو سره تعاون کولو ته تیار نۀ وو. هغوي دې مشرانو سره د تلو نه انکار وکړو بلکې په محمد اکبر خان باندې میکناټن حمله هم وکړه د دې نتیجه دا شوه چې غازیان په هغوي راپریوتل او د هغوي فیصله ئ وکړه. کوم ګارډ چې د میکناټن ټولي سره د هغوي د حفاظت دپاره چاوڼۍ نه تللے وۀ په هغوي کبنې ماسوائ د چپړاسیانو د یو هندو جمعدار نه یو کس هم د میکناټن د خلاصي کوشش ونۀ کړو. دا د چپړاسیانو جمعدار هم غازیانو ټکړه ټکړه کړو اګر چې انګریزان عام طور باندې محمد اکبر خان د میکناټن اصلي قاتل ګڼي. او وائي چې وړومبے محمد اکبر خان د تماچې ګوزار په هغۀ وکړو او هغه ئ مړ کړو مګر حقیقت دا دے چې دوئ سره د دې په ثبوت کبنې څۀ چشم دیده شهادت نشته معلومیږي چې چونکې محمد اکبر خان میکناټن د جرګې ځاے ته راوستے وۀ او په هغه ځاے کبنې هغه قتل شو له دې کبله د کابل فیرنګیانو دا غوښتل چې د محمد اکبر خان نه د بدل اخستو دپاره د هندوستان انګریزان د هغۀ برخلاف برافروخته کړي. اګرچې میکنزي، ایري او کوم نور انګریزان چې د محمد اکبر خان په لاس کبنې قیدیان شوي وو هغوي د یو څو خاص واقعاتو په بنا باندې دا وائي چې میکناټن محمد اکبر خان په خپل لاس قتل کړے دے. مګر په هغه زمانه کبنې هم د ډیرو پښتنو شرفاؤ دا یقین وۀ چې میکناټن د بې قابو سپاهیانو د لاسه قتل شوے دے. چنانچه میکنزي هم په یوه موقع د خپل قید د حالات د بیان په دوران کبنې لیکي:

" Capt. Skinner and myself remained in Akbar's house until the 30th Dec. During this time we were civilly treated, and conversed with numbers of Afghan gentlemen who came to visit us. Some of them assreted that Envoy had been murdered by the unruly soldiery. Others could not deny that Akbar was the assassin."

ترجمه: "کپتان سکنر او زۀ د اکبر په کور کبنې تر دیرشم دسمبر پورې پاتې شو په دې عرصه کبنې مونږ سره شریفانه برتاؤ شوے وۀ. او ډیرو پښتنو شرفاؤ سره مو د خبرو اتفاق شوے وۀ چې زمونږ کتو له راغلي وو. په هغو کبنې څنو دا وئیل چې میکناټن د بې قابو سپاهیانو د لاسه قتل شوے دے او څنو د دې نه انکار نۀ شو کولے چې اکبر د هغۀ اصلي قاتل وۀ."

د میکناټن د مرګ د واقعې نه پس په دویمه ورځ یعنې په څلیریشتم دسمبر د خانانو او د سرداران کابل بیا یوه جرګه د مزید کارروایۍ دپاره وشوه. محمد اکبر خان په دې جرګه کبنې یو زوردار تقریر وکړو او وې وئیل چې فیرنګیان مونږ سره دهوکه کول غواړي او د افغانستان نه د وتو اراده نۀ لري له دې کبله پکار دي چې هغوي مونږ له خپل ټول وادۀ کړي

سرې سره د خپلو ښځو په طور د يرغمال راکړي او خپلې ټولې توپې ګولې او دارو او خزانه مونږ ته حواله کړي د دې جرګې د خبرو خلاصه ميکنزي په خپلو الفاظو کښې دا رنګ ورکوي :

" We were vehemently accused of treachery, and everything that was bad, and told that the whole of the transactions of the night previous had been a trick of Mohammad Akbar and Aminullah, to ascertain the envoy's sincerity. They declared that they would now grant us no terms save on the surrender of the whole of the married families as hostages, all the guns, ammunition and treasure."

ترجمه :" په مونږ باندې په ډير زور شور سره د فريب او په دنيا کښې چې څۀ بد کارونه دي د هغې الزامونه ولګيدل او مونږ ته ووئيلے شول چې د هغې بلې شپې ټوله کارروائي د محمد اکبر او د امين الله خان يو چل وۀ چې په هغې د ميکناټن د ايمانداری پته ولګوي. بيا هغۀ ووئيل چې مونږ به اوس په بل يو شرط هم جوړه ونۀ کړو بغير د دې نه چې ټول وادۀ کړې ښځې په طور د يرغمال مونږ ته حواله شي او ټولې توپې ګوله بارود او خزانه مونږ ته راکړې شي."

د سردارانو په دې جرګه کښې ميکنزي، سکنر، لارنس، کنولي او ايري ټول موجود وو. لارنس د ميکناټن فوځي سکتر وۀ. هغۀ د دې جرګې حال په خپله روزنامچه کښې دا شان ليکلے دے :

" On the following morning (24th) We (Capt Skinner, Mackenzie and himself) were taken to Nawab Zaman Khan's house, escorted by Sultan Jan and other Chiefs, to protect us from the Ghazees; there we met Capts Conolly and Airey (hostages) and all the rebel Sardars assembled in Council. The Envoy's death was lamented, but his conduct severely censured, and it was said the now no faith could be placed in our words.

A new treaty however was discussed, and sent to the General and Major Pottinger, and towards evening we returned as we came to Mohammad Akbar's, where I remained a prisoner, but well and courteously treated, till the morning of the 26th when I was sent to Naib Aminullah Khan. On reaching his house; I was ushered into his private apartment. The Naib received me kindly, showed me the Envoy's original letter in reply to Mohammad Akbar's proposition, touching his being made Shah Shuja's Wazir, receiving a lakh of rupees on giving the Naib a prisoner to us, thirty lacs on the final Settlement of the insurrection etc. To this the Naib added that the Envoy had told Mohd Akbar's cousin, that a lac of rupees would be given for his (Aminullah's) head. I promptly replied "Tis false" that Sir William had never done so, that it was utterly foreign and repugnant to his nature, and to British usage. The Naib expressed himself in strong terms against the Envoy, contrasting his own fair and open conduct with that of Sir William. He told me that

General Elphinstone & Major Pottinger had begged I might be released, as my presence was necessary to enable them, to prepare bills on India, which it had been arranged, the Sardars were to get. After some delay consequent on my asking for Capt. Mackenzie to be released with me, and Mohd Akbar's stoutly refusing the release of either of us, I was sent into cantonments on the morning of the 29th, being disguised as an Afghan for my greater protection. I must here record that nothing could exceed the Naib's kindness and attention to me while under his roof."

( Camp Zoudah, ten miles south of Tazeen-1842. )

ترجمه : "په بله ورځ سحر په شلیریشتم ئ مونږ (کپتان سکنر، میکنزي او زۀ) د نواب زمان خان کور ته راوستو او د غازیانو نه د بچ ساتلو دپاره سلطان جان او نور سرداران په طور د محافظانو راسره ملګري شو. په هغه ځاے کښې مونږ کپتان کنولي، کپتان ایري چې یرغمالان وو ولیدل، باغیان سرداران هم ټول هلته د جرګې دپاره راجمع شوي وو. د میکناټن په مرګ باندې ټولو د افسوس اظهار وکړو ولې د هغۀ د رویې ئ سخت مذمت وکړو. او وې وئیل چې اوس د فیرنګیانو په هیڅ خبره اعتبار پاتې نۀ شو.

بیا هم هغوي د بلې نوې عهدنامې په حقله بحث وکړو او هغه ئ ایلفنسټن او میجر پوټنګر له واستوله او مابښام نزدې مونږ واپس شو او د محمد اکبر کور ته راغلو. هلته زۀ تر شپږویشتم تاریخه پورې په طور د قیدي پاتې شوم. مګر ما سره ښۀ او په فکر سلوک کیدو بیا ئ زۀ نائب امین الله خان له واستولم. هر کله چې زۀ د هغۀ کور ته ورسیدم نو زۀ ئ د هغۀ د خلوت کمرې ته بوتلم. نائب ما سره په مهربانۍ پیش راغلو. او د میکناټن هغه اصلي خط ئ راته ښکاره کړو کوم چې هغۀ د محمد اکبر خان د تجویزونو په جواب کښې هغۀ ته لیکلے وۀ یعنې دا چې محمد اکبر خان دې د شاه شجاع وزیر شي او محمد اکبر له به یو لک روپۍ د نائب د ګرفتارۍ او فیرنګیانو ته د هغۀ د حواله کولو په صله کښې ورکیدے شي او دیرش لکه روپۍ به هغه وخت محمد اکبر له ورکیدے شي چې د بغاوت اخري فیصله وشي وغیره.

دې سره نائب دا خبره هم زیاته چې میکناټن د محمد اکبر خان د ترۀ زوي ته دا هم وئیلي وو چې کۀ د نائب امین الله خان سر مو راوړو نو یو لک روپۍ به نورې درکړم. د دې خبرې په جواب کښې ما ورته سمدستي ووئیل چې دا دروغ دي او سر ولیم میکناټن دا خبره هیچرې هم نۀ ده کړې او دا قسم کار د هغۀ د طبیعت نه بالکل خلاف او منافي وۀ او هم د فیرنګیانو د رواج نه دا قسم کار سخت مخالف دے.

نائب بیا د میکناټن برخلاف سختې خبرې وکړې او د خپلې د انصاف او د صفایی د رویې مقابله ئ د سر ولیم رویې سره وکړه. هغۀ بیا راته ووئیل چې جنرل ایلفنسټن او میجر پوټنګر مونږ ته سوال کړے دے چې مونږ تا خلاص کړو ځکه چې په هندوستان باندې د هغې بلونو د تیارولو دپاره ستا هغوي ته ضرورت دے چې د کومو روپۍ به مونږ ته راکیدے شي.

چونکې ما خپل ځان سره د کپتان میکنزي د خلاصي دپاره هم سوال کړے وۀ او محمد اکبر زمونږ دواړو د خلاصي مخالف وۀ له دې کبله د څۀ ډیل نه پس زۀ د نهۀ ویشتم تاریخ په سحر چاونۍ ته راواستولے شوم او د نائب مشرے زوے سره د یوې مضبوطې دستې د پیادوو او د سورو زما د حفاظت دپاره ملګري شول او د مزید حفاظت دپاره ما د پښتنو بهیس بدل کړو.

زۀ په دې تحریر کښې دا خبره ضرور په تحریر کښې راوستل غواړم چې تر کومې پورې زۀ د نائب په کور کښې وم نو د هغۀ ماسره د مهربانۍ او د توجه څۀ حد نۀ وۀ.''

کیمپ زاوره لس میله د تزین نه جانب سهیل ته

مؤرخه لسم مئ 1842ء

د میکناټن د مرګ نه پس جنرل ایلفنسټن د هغۀ د فرائض کار میجر پوټنګر ته وسپارلو لکه چې څرنګ د کپتان لارنس په برني تحریر کښې ذکر شوے دے سرداران کابل په جرګه د میکناټن د مرګ نه پس یوه بله نوې عهدنامه میجر پوټنګر ته د فیرنګیانو د منظورۍ دپاره پیش کړه ځکه چې د وړومبۍ عهد نامې باوجود میکناټن دا کوشش کولو چې د دې شرطونو نه ځان وباسم. او یو ځل بیا د غلجو او قزلباشو په امداد سره د خپلې تورې په زور په افغانستان کښې تر سپرلي پورې پاتې شم. د دې وجه دا وه چې انګریزي فوځ لا په وسله پُر وۀ او په خپل ځان کښې ئې د جنګ کولو څۀ نه څۀ طاقت لیدلو خو هغوي د دې په انتظار کښې وو چې کۀ چرې د افغانستان یو څو قبیلې زمونږ په مرسته ودریږي او مونږ ته غله وغیره راورسوي او په میدان جنګ کښې زمونږ امداد وکړي نو مونږ به نۀ د زړې عهدنامې څۀ لحاظ وساتو او نۀ د یرغمال بلکې د نوي سره به جنګ شروع کړو. له دې کبله سرداران کابل دا غوښتل چې انګریزي فوځ نه هغه ټوله وسله واخستې شي چې د کوم په زور هغوي بیا ځان جنګ ته جوړول غواړي. او هم د هغوي نه ټولې روپۍ اخستل پکار دي چې د چا په زور هغوي د افغانستان ټول قبائل ځان ته را اړول غواړي.

د دې نوې عهدنامې د شرطونو مطابق د سرداران کابل دا خیال وۀ چې بیا به فیرنګیان عهدشکنۍ ته ونۀ لمسیږي. دا شرطونه درې وو :

(۱) فیرنګیان دې ماسوائ د شپږو توپو نه نورې ټولې توپې په ځاے پریږدي.

(۲) هغوي دې خپله ټوله خزانه سمدستي غازیانو ته حواله کړي.

(۳) او د موجوده یرغمال په ځاے دې انګریزان وادۀ کړي سړي سره د خپلو ښځو او بال بچ یرغمال ورکړي.

اګرچې دا شرطونه ډیر سخت او د سپکاوي شرطونه وو ولې فیرنګیانو ته هم دا وخت معلوم شوے وۀ چې سرداران کابل سره د میکناټن د عهدشکنۍ تحریري ثبوت موجود دے. او اوس د هغوي په جائز طور د فیرنګیانو په دیانتدارۍ هیڅ اعتبار پاتې شوے نۀ دے له

دې کبله هغوي سره د دې شرطونو د رد دپاره څۀ مدلل وجوهات موجود نۀ وو.

علاوه د دې نوې شرطونو نه نائب امير په شپږ ويشتم دسمبر چاونۍ ته راغلو او د ميکناټن د لاس د څوارلس لکو روپو هنډۍ ئ د ادائيگۍ دپاره فيرنگيانو ته پيش کړې.

ميجر پوټنگر هم د دې نوې شرطونو او هم د دې څوارلس لکو روپو د ادائيگۍ سخت مخالفت وکړو د دې دپاره يو جنگي جرگه جنرل ايلفنسټن د مشورې دپاره راټوله کړه په دې جرگه کښې دا افسران موجود وو:

(۱) جنرل ايلفنسټن (۲) بريگيډير شيلټن (۳) بريگيډير اينکويټيل (۴) کرنل چيمبرز (۵) کپتان بيلو اسسټنټ کوارټر ماسټر جنرل (۶) کپتان گرانټ اسسټنټ ايډجوټنټ جنرل.

په دې جرگه کښې ميجر پوټنگر دا رائ ظاهره کړه چې مونږ له لا خو تر اخره پورې په کابل کښې جنگ کول پکار دي او لا د خپل فوځ په زور جلال اباد ته واپس کيدل مناسب دي. فوځي افسرانو د ميجر پوټنگر د دې رائ سخت مخالفت وکړو او وې وئيل چې په موجوده صورت کښې دا دواړه تجويزونه ناممکن العمل دي ځکه چې نۀ خو خوراک شته او نۀ په چارچاپيره قلعه گانو زمونږ قبضه . جلال اباد ته لار هم سخته مشکله ده او بغير د غازيانو د تعاون نه په هغې تلل سخت خطرناک دي. پس د انگريزي فوځ د بچ کيدو دپاره سرداران کابل سره صلح ضروري ده او هر څۀ رقم چې هغوي غواړې هغه ورله ورکول پکار دي. چنانچه د دې جرگې په رائ ميجر پوټنگر په دې نوې عهدنامه باندې سمدستي دستخط وکړو او کپتان لارنس په حکومت هند باندې د هنډو د تيارولو دپاره د نائب امير په حکم رها کړې شو.

جنرل ايلفنسټن د ښځو او د بچو په طور د يرغمال ورکولو سخت مخالف وۀ چنانچه غازيانو هم په دې شرط باندې د عمل کولو مطالبه پريښوده او صرف کپتان ډرمنډ، والش، واربرټن او ويب علاوه د کپتان کنولي او ايري نه نواب زمان خان ته يرغمال واستولے شول. د دې افسرانو په رسيدو سره سردارانو کپتان سکنر او ميکنزي چاونۍ ته راپريښودل. لفټيننټ هائن چې لا هم هغه شان زخمي وۀ سره د يو څو نورو زخميانو او مريضانو د ښۀ حفاظت په خاطر د کابل ښار ته واستولے شو.

په نهۀ ويشتم دسمبر د شاه شجاع درې توپې او د خزانې يوه لويه حصه هم سردارانو ته حواله کړې شوه او په ديرشم دسمبر نور باقي زخميان او مريضان د لفټيننټ ايونز د کمان لاندې او د ډاکټر کمبل او ډاکټر برويک زير علاج ښار ته واستولے شول. په دې ورځو کښې به اکثر سوداگر خلق چاونۍ ته د غلې او د نور سازو سامان د خرڅولو دپاره راتلل مگر کله کله به د اولس بې قاعدې خلقو په دوئ باندې هم حمله کوله. هر کله چې سردارانو ته د دې خبرې شکايت وشو نو هغوي انگريزي فوځ ته په دوئ باندې د ډزو کولو اختيار

ور کړو.

تر پنځم جنوري پورې نور هيڅ قابل ذکر واقعه ونهٔ شوه سوائ د دې نه چې انګريزي فوځ دا فيصله وکړه چې په شپږم تاريخ به هغوي د چاوڼۍ نه روانيږي او غازيانو دا فيصله وکړه چې نواب جبار خان به تر جلال اباد پورې د دې فوځ د حفاظت دپاره سره د دوه زره سړو هغوي سره ځي.

هر کله چې شاه شجاع وليدل چې فيرنګيان بغير زما د مشورې نه هغه عهدنامه چې کومه ما سره هغوي کړې وه شا ته وغورځوله او سره د خپله فوځه افغانستان پريښودلو ته تيار دي نو هغهٔ بريګيډير ايکويټيل ته چې د شاه شجاع د فوځونو کمانډر وهٔ سوال جواب وليږلو چې آيا دا خبره ښه ده چې د ضرورت په وخت کښې تاسو ما پريږدئ او کوم فوځ چې فيرنګيانو ماته وئيل چې ستا دے د هغې فوځ د امداد نه ما اوس محرومه وي.

## باب

اخر الامر پـه شپږم د جنوری د سحر په وخت کښې د انګریزانو بدقسمته فوځ د دوؤ میاشتـو د قـلـعـه بندی نه پس په یو داسې سفر باندې د هندوستان په لوري روان شو چې مـاسـوائ د یـو څـو تنو نه د ټولو دپاره د تباهۍ او د مرګ باعث شو. د کابل نه تر جلال اباده پـورې پـه لاره کـم ازکـم څـلـور داسـې دشوار ګزار درې پیښیږي چې کۀ چرې د یو مضبوط ارادې اومـنـظـم لښکر د دې غرونو د سر د پاسه کښيني او يو لوے فوځ په دې لاره باندې تلو تـه پـریښودل نۀ غواړي او د هغوي مقابله وکړي نو د هیڅ فوځ دپاره هم د دې درو نه ژوندي وتل ممکن نۀ دي.

د کـابـل نـه د جـلال اباد په لاره کښې وړومبۍ دره د خورد کابل ده وړپسې تزین بیا پـروان دره او د هـغـې نه پس جګدلک ده. په کوم موسم کښې چې فیرنګیان د کابل نه روان شـوي وو نـو د چـارچـاپیـره غـرونـه ټول د واؤرو نه ډک وو او د یخنۍ دومره شدت وۀ چې روانـې اوبۀ به هم د ماښام نه پس ټولې کنګل شوے. هره ورځ به څو څو انچه واؤره وریدله او د بـاد او د سیـلـۍ دا حـال وۀ چـې بنیادم به بهر د څلې د لاسه د ودریدو قابل نۀ وۀ سره د دې دومـره یـخـنـۍ او د مـوسـم د سخت والي انګریزي فوځ سره نۀ خو د باربرداری کافي ذرائع مـوجـود وۀ او نـۀ د یـخ نـه د ځان ساتلو دپاره هغوي سره پوره ساز و سامان وۀ. څۀ تمبوان او خیـمې چې هغوي سره وے په هغې کښې به انګریزي افسران او د هغوي بال بچ وسیدلو مګر د غـریبانانو سپاهیانو دپاره بغیر د خداے نه بله اسره نۀ وه. خو چې څۀ وخت دا فوځ د چاونۍ د مـکـانـاتـو نه د سفر په غرض بهر ته راووتل نو لاچار سپاهیان او د هغوي ښځې او واړۀ واړۀ بچي بهر په ډاګه د واؤرو باران او څلې ته پریوتل. کوم مشکلات، تکلیفونه او مصیبتونه چې دې فوځ ته د دې سفر په دوران کښې پیښ شول د هغې مکمله تشریح په الفاظو کښې نۀ شي کیـدے. کـوم دلـخـراش مـنـاظر چې د قتل و غارت او د یخنۍ دلاسه د افغانستان خلقو د دې فوځ افسرانو او سپاهیانو کښې ولیدل د هغې بیان سخت افسوسناک دے.

خـلاصـه دا ده چـې د یـخـنـۍ د واؤرو او د لـوږو او د نـور بـدنـي تکلیفونو نه علاوه د غـلـجیـانـو د اولـس بیشماره خلقو په دې فوځ باندې د خورد کابل په دره کښې او هغې ته د رسیـدو نه وړومبے په چپه چپه کښې دا شان حملې وکړې او دومره سړي ئې هلاک کړل چې مـاسـوائ د یـو ډاکـتـر بـرائیـډن نـه نور ټول انګریزي سپاهیان افسران او دیسي سپاهیان او افسران او د هغوي ښځې او بچي د دې غیر منظم اولس د لاسه ټول قتل شول.

لـکـه څرنګ چې وړومبے ذکر شوے دے په شپږم د جنوری ټول انګریزي فوځ چې پـه هـغـې کښې لـس کـم اووۀ سـوه ګـوره، نهۀ سوه اویا سوارۀ یعنې رساله، دوه زره اتۀ سوه

څلوېښت تنه پياده يعنې پلټن، کل څلور زره پنځۀ سوه د جنګ قابل سړي شپږ د اسونو توپخانې او درې د غرونو توپې شاملې وې روان شول. د دوئ نه علاوه کم نه کم دولس زره نور ملازمان او چاکران چې هغوي ته کيمپ فالورز د فوځ په اصطلاح کښې وئيلے شي هم دوئ سره شامل شول او بيا بيشماره ښځې او د هغوي بال بچ هم د افسرانو او هم د سپاهيانو دوئ سره روان شول. منځکښې اصل فوځ روان شو چې د بريګيډير شيلټن د کمان لاندې وۀ. دې د منځ فوځ سره د ټولو افسرانو ښځې او د هغوي محافظ فوځ ناجوړه او بيمار فوځيان دوه د اسونو توپې د اينډرسن بې قاعدې رساله اووۀ ديرش نمبر پلټن سره د خزانې او پنځم نمبر پلټن سره د سازوسامان شامل وو. د ټولو نه وروستو څلور پنځوس نمبر پلټن او د شپږم نمبر د شاه پلټن او پنځم نمبر رساله او څلور د اسونو توپخانه د کرنل چيمبرز د کمان د لاندې په طور د رير Rear ګارډ تيار شول.

نهۀ بجې سحر دوئ کوچ شروع کړو. مګر په لس بجې د نواب جبار خان سړے راغے چې يوه ورځ دې انګريزي فوځ نور پاتې شي ځکه چې زما د بدرګې فوځ لا تيار نۀ دے ولې فوځ د دې نه وړومبے په راوتو لاس پورې کړے وۀ. له دې کبله هيله تر ماښامه پورې هغوي چاوڼۍ خالي کړه. د کابل عام خلق چې خبر شول چې چاوڼۍ خالي شوه نو د لوټ په خاطر د چاوڼۍ په هر ګوټ باندې راپريوتل او څۀ چې پاتې شوے سامان وۀ هغه ئې چور کړو. او د ميکناټن ځاے او نورو د چاوڼۍ محفوظو مقاماتو ته ئې اور ورته کړو. اوس شپه راغله او بيحده ډيره واؤره په دې فوځ باندې پريوتله د دې فوځ وروستۍ حصه يعنې رير ګارډ لا د دريائے کابل نه پورې وتے نۀ وۀ چې په دې ورځ کښې يو انګريزي لفټيننټ سره د پنځو سوؤ سړو په واؤرو کښې مړۀ شول. د دې نه علاوه نور ډير سپاهيان او نوکران چاکران په لاره باندې د ستوماني له کبله په واؤره کښې راپريوتل. دې فوځ وړومبے پړاؤ د باګرام په مقام باندې وکړو دا ځاے د چاوڼۍ نه پنځۀ ميله فاصله باندې پروت دے. ولې رير ګارډ په مشکله دوه بجې د نيمې شپې راورسيدو. په دې پړاؤ کښې هم د شپې ډير خلق د يخنۍ او د څلې د لاسه مړۀ شول. په وړومبے ورځ په فوځ کښې چې څۀ لږ ډير ضبط موجود وۀ هغه هم د دې دومره ډيرو مرګونو او د نۀ زغملو قابل تکليفونو په وجه ورک شو. او څۀ وخت چې په دويمه ورځ اتۀ بجې سحر کوچ شروع شو نو سپاهيان نوکران چاکران او ښاروي ټول ګډوډ بې قاعدې طور باندې روان شول. روانيدو سره په دې ورځ د دې فوځ نه د شاه شپږم نمبر پلټن ټوله ماسوائ د يو څو سړو نه کابل ته وتښتيدله. څۀ وخت چې باقي مانده فوځ روان شو نو دوئ سره سم د اولس د خلقو سوارۀ او پياده هم په خوا خوا کښې روان وو. دې خلقو په دغه ورځ د بريګيډير اينکويټيل زير کمان ګوره فوځ باندې حمله وکړه او ډير مال ئې د هغوي نه لوټ کړو او يوه توپه ئې هم ترينه واخسته چونکې د فوځ په مارچ کښې هيڅ ترتيب

او تنظیم نهٔ وهٔ. د هغهٔ د امداد دپاره هیڅ انتظام نهٔ شو کیدے. په دې کښې د دې خلقو رسالې عین د فوځ په منځ باندې حمله وکړه. او ډیر مال ئې ترینه لوټ کړو. په دې ورځ هم ډیر کسان د ستومانۍ نه او ډیر د زخمونو د لاسه مړهٔ شول. چونکې د اسونو په سومونو کښې د واوړې لوې لوې ګټیان ورننوتي وو او په دومره مشکل او سخته لاره باندې د هغوي دپاره د توپو راښکل ناممکن شوي وو له دې کبله فیرنګیانو په نورو دوؤ توپو کښې میخونه ټک وهل او په ځاے باندې ئې پریښودې هم په دې ورځ لفټیننټ وائټ اولفټیننټ شا د اولس د خلقو د لاسه ژوبل شول. په دې منځکښې اتفاقاً کپتان سکنر د محمد اکبر خان یو نوکر سره مخامخ شو هغهٔ سکنر ته ووئیل چې محمد اکبر خان هم نزدې په خواوشا کښې سره د خپلې بدرګې د انګریزي فوځ د حفاظت دپاره موجود دے دغه وخت فوځ بتخاک ته رارسیدلے وهٔ او په ټوله لار ئې د اولس خلقو سره جګړه کړې وه. سکنر سمدستي محمد اکبر خان له ورغے او د خلقو د دې حملې سبب ئې د هغهٔ نه دریافت کړو. محمد اکبر خان هغهٔ ته په جواب کښې ووئیل چې سرداران کابل زهٔ تاسو سره د جلال اباده پورې ستاسو د رسولو په کار باندې مقرر کړے یم ولې چونکې تاسو د نواب جبار خان د صلاح نه بغیر رارواں شوي یئ. په دې سبب عامو خلقو ته په تاسو باندې د حملې کولو موقع په لاس راغله. بیا محمد اکبر خان ورته ووئیل چې تاسو ضرور په بتخاک کښې یوه شپه نور پاتې شئ چې زهٔ تاسو له خوراک وابنهٔ او د فوځ دپاره لرګي راواستوم. مګر هغهٔ دا خبره هم وکړه چې ماله شپږ نور یرغمال د دې خبرې دپاره راکړئ چې ستاسو فوځ تر هغې پورې د تزین نه مخکښې نهٔ وړاندې کیږي تر څو چې د جنرل سیل د جلال اباد نه د وتو خبر مونږ ته نهٔ وي رارسیدلے. رښتیا خبره دا وه چې تر دې وخته پورې د غازیانو د فیرنګیانو په دیانتدارۍ اعتبار نهٔ راتلو ځکه چې نهٔ خو جنرل سیل د جلال اباد نه اونهٔ د قندهار فوځ د هغې علاقې نه وتلو ته تیار وهٔ بلکې هم هغه شان هغوي د سپرلي د راتلو په انتظار کښې شپې ورځې په ځان تیرولې او د خپلو خپلو کیمپونو استحکامات ئې نور هم مضبوطول. د غازیانو په زړهٔ کښې د کابل د فوځ متعلق دا شک وهٔ چې دوئ په جلدۍ جلدۍ د جلال اباد فوځ سره شاملول غواړي چې په سپرلي کښې بیا په افغانستان حمله وکړي مګر حقیقت هر څهٔ چې وهٔ خو د فریقینو د یو بل په لوظ باندې ډیر کم اعتبار پاتې شوے وهٔ.

جنرل ا یلفنستن ته هم د جنرل سیل دا رویه ښه نهٔ ښکاریده. مګر دا وخت د هغهٔ په لاس کښې دومره طاقت نهٔ وهٔ چې هغه ئې د خپل حکم په منلو مجبور کړے وے. لاچار هغهٔ د محمد اکبر خان دا شرط منظور کړو او د اولس خلقو په انګریزي فوځ باندې ډزې بندې کړې. د شپې انګریزي فوځ د خورد کابل په خلهٔ کښې په یو وچت ځاے باندې ډیره وکړه مګر د شپې بیا ډیر سخت یخ او واؤره پریوتله. په اتمه جنورۍ سحر وختي بیا غازیانو په

انگریزي فوځ دړې وکړې نو کپتان سکنر محمد اکبر خان له ورغے او ورته هغهٔ وویل چې مونږ له سمدستي میجر پوټنګر او کپتان لارنس او میکنزي په طور د یرغمال راکړئ چنانچه فیرنګیانو هغوي حواله کړل او ډزې بیا بندې شوې او محمد اکبر خان با اثره سړي مخکښې راواستول چې د خورد کابل دره د غلجو نه خالي کړي.

د دې انتظاماتو نه پس انګریزي فوځ بیا روان شو مګر د یخنی او ځلې نه په هغوي کښې د ډیرو ګوتې او لاسونه پریوتل او څوک چې څهٔ لږ ډیر جوړ وو د هغوي دپاره د ټوپک نیول هم مشکل وهٔ د سورو دپاره په اسونو باندې سوریدل هم ناممکن وو او یو یو کس به دوؤ دوؤ دریو دریو تنو په اس سورولو. په داسې مات ګوډ حالت کښې انګریزي فوځ د خورد کابل په دره ورننوتو چې نهٔ خو په هغوي کښې څهٔ باقاعدګي پاتې شوې وه او نهٔ څهٔ طریقهٔ کار، مسلح سپاهیان به بې وسلې نوکرانو چاکرانو سره ګډوډ روان وو او هرکله چې به د مقابلې او جنګ موقع پیښه شوه نو د بدنظمی او بې ضابطګی په سبب به د ټول فوځ دپاره په یو ځاے کار کول ناممکن وو.

د خورد کابل دره د یو سر نه تر بله سره پورې پنځهٔ میله ورږده ده او دواړو طرفو ته ئ ډیر وچت وچت غرونه په سر ولاړ دي. د درې په منځکښې یو خوړ تلے دے او په ژمي اوړي د اوبو نه ډک بهیږي. دا دره په منځکښې ډیره تنګه ده هرکله چې انګریزي فوځ دې تنګۍ ته راورسیدو نو د چارچاپیره علاقې غلجي په ډیر لوے شمار کښې د دواړو طرفو نه د غرونو په سوکو رابښکاره شول او د فوځ په مخکنی حصه باندې ئ ډزې شروع کړې. دې ایډوانس سره د افسرانو ښځې هم سورې روانېوے چنانچه دوئ خو خپل اسونه په تراټ مخکښې وزغلول او ماسوائ د لیډي سیل نه چې معمولي شان په بازو باندې زخمي شوه نورې ټولې ښځې صحیح سلامت د درې نه وتې.

دا حقیقت دے چې د محمد اکبر خان ملګرو چې د انګریزي فوځ په ایډوانس کښې روان وو ډیر وس وکړو چې غلجي دا ډزې بس کړي مګر هغوي د هیچا په خبرو باندې غوږ نهٔ کښیښودو او لکه د لیونو په شان په دې فوځ باندې راپریوتل.

"It ought, however, to be mentioned that several of Mohd Akbar's chief adherents, who had preceded the advance, exerted themselves strenuously to keep down the fire; but nothing could restrain the Ghilzyes who seemed fully determined that no body should interfere to disappoint them of their prey." ( Eyre P. 227 )

هرکله چې د فوځ اصلي حصه په دې تنګۍ کښې راننوته نو غلجو داسې مهلکه او تباه کن ګوله باري په هغوي وکړه چې بیشماره خلق ئ قتل او ژوبل کړل او په انګریزي فوځ کښې دا شان هیبت او پریشاني پیدا شوه چې هر یو کس خپل مال اسباب بال بچ په ځاے پریښودو. او د ځان د خلاصي دپاره ئ په دې تنګه دره کښې مخې ته د راوتو دپاره دوونه

کړل. په دې قتل عام کښې د 44 نمبر پلټنې چې ګوره وو او 54 نمبر پلټنې ته چې دا دواړه وروستو راروانې وې سخت نقصان ورسیدو. په دې ځاے کښې د فیرنګیانو نه یوه بله توپه هم پاتې شوه. ځکه چې د هغوي ټول سپاهیان اوافسران قتل شول. د کپتان اینډرسن د ټولو نه مشره لور او د کپتان بوائیډ د ټولو نه ورکوټے زوے په دې مقام کښې د فوځ نه ورک شول. دا هلک بیا وروستو محفوظ د محمد اکبر خان په کیمپ کښې بیاموندې شو او دا جینی هم صحیح سلامت فیرنګیانو ته واپس شوه.

لفټیننټ ایري وائي چې یواځې په دې مقام باندې درې زره خلق قتل او مړهٔ شول په دوئ کښې کپتان پیټن اسسټینټ کوارټر ماسټر لفټیننټ سینټ جارج د 37 نمبر پلټنې، میجر ګرفتهه د 37 نمبر پلټنې او میجر سکاټ د 44 نمبر د ګوره پلټنې کپتان باټ د 5 نمبر رسالې او کپتان ټروپ چې د شاه شجاع د فوځونو بریګیډ میجر وهٔ شامل وو. لفټیننټ سټرټ اینجنیر هم په دې مقام کښې مړ شو او ډاکټر کارډیو سخت زخمي شو.

هر کله چې دا فوځ خورد کابل ته راورسیدو او پړاؤ ئې وکړو نو د شپې عین تر سحره پورې بیحده ډیره زیاته واوره پریوتله. بدقسمتي دا وه چې د وړومبي ورځې په جنګ کښې د فوځ نه ټولې خیمې په جګړه کښې غلجو تښتولے وے او صرف څلور خیمې د هغوي په قبضه کښې پاتې شوے وے. په دې کښې یوه خو د جنرل ایلفنسټن وه دوه د ښځو او د بچو د اودهٔ کیدو دپاره ورکړې شوې اوپه یوه کښې بیشماره زخمیان او ناجوړه ګوره او هندوستاني افسران، سپاهیان ښځې او بچې ټوله شپه یو خوا بل خوا واهي تباهي د سر په سیوري کولو دپاره د لیونو په شان ګرځیدل. او ټوله شپه ئې د ستوماني او د څلې د لاسه ژړا او فریادونه کول. هم په دغه حالت کښې به هغوي د سختو تکلیفونو او د لوږې نه بیهوشه شول او ساه به ئې ورکړه. تر سحره پورې په دې رنګ د مړو او د بې خودو یو لوے ډیرے ولګیدو په دې ځاے کښې آب و هوا د کابل په نسبت هم زیاته یخه وه او دا د تعجب خبره ده چې په دې بې سروسامانۍ کښې په انګریزي فوځ کښې یو زنده سر هم څرنګ پاتې شو.

په نهمه جنورۍ سحر کوم سرې چې ژوندي پاتې شوي وو هغوي د شپې د ناقابل بیان سختۍ په سبب خپلو مړو ملګرو ته ډیر د حسرت په نظر سره وکتل او وې ویل چې کاش مونږ هم مړهٔ وے چې زمونږ د تکلیفونو خاتمه هم شوے وے. چارچاپیره د دهشت او د مصیبتونو یو خوفناک منظر په مخکښې پروت وهٔ. د زخمیانو، د اوږو، د واورو وهلو خلقو فریادونو او اسویلو د قیامت یوه نمونه جوړه کړې وه او څهٔ خلق چې ژوندي وو هغوي د ځان د خلاصي دپاره چارچاپیره نظر زغلولو مګر د هر طرف نه مرګي هغوي راګیر کړي وو او د هغوي هیڅ کوشش پکار نهٔ راتلو.

د جنرل ایلفنسټن په دغه ورځ په لس بجې د کوچ کولو خیال وهٔ مګر د فوځ یوه لویه

حصه د بیشماره نوکرانو چاکرانو سره بغیر د حکم ته په اتۀ بجې روان شول. او قریباً یو میل تلللي وو چې د جرنیل په حکم باندې هغوي واپس کړې شول. وجه دا وه چې محمد اکبر خان سوال جواب راولیږلو چې زۀ انتهائي وس نن کوم چې تاسو ته خرڅ خوراک در ورسوم قریباً غرمه کپتان سکنر د محمد اکبر خان د طرف نه دا تجویز پیش کړو چې ټولې ښځې او بچي چې په انګریزي کیمپ کښې دي او هغوي ته په موجوده صورت کښې ډیر سخت تکلیف دے هغوي دې ماته د حفاظت دپاره راواستولے شي. او زۀ به هغوي ښۀ په حفاظت د فوځ نه یو پړاؤ وروستو ځان سره درولم. دا تجویز د څۀ بحث مباحثې نه پس فیرنګیانو منظور کړو او ټولې انګریزي ښځې او بچي د محمد اکبر خان کیمپ طرف ته د پښتنو سورو په حفاظت کښې په دغه ورځ لاړل. جنرل موصوف د انګریزي فوځ هغې افسرانو ته چې زخمیان وو هم اجازت ورکړو چې تاسو هم د محمد اکبر خان د دې دعوت نه فائده اخستے شئ. مګر اګاهو د دې نه چې زخمیان د دې حکم نه خبر شوے وے د محمد اکبر خان سره ټولې ښځې او بچي سره د دوؤ افسرانو کپتان ټروپ او لفټیننټ مین د محمد اکبر خان کیمپ ته ورسول. د انګریزي افسرانو دې ښځو د کابل نه دیخوا تر دې وخته پورې هیڅ څۀ قابل ذکر خوراک نۀ وۀ خوړلے. ځنو ښځو سره د یو څو ورځو د تي بچي وو او بغیر د امداد نه د ودریدو قابلې هم نۀ وے او ځنې پکښې حاملې هم وے. مګر د جنګ ضروریاتو هغوي په دې مجبوره کړې وے چې اوس هغوي په اوښانو او یابوانو باندې د یخنۍ او د واؤرو په ناقابل برداشت سختو د خپل قام د خدمت په نشه کښې په پردي ملک کښې روانې وے. د هغوي چې څۀ نوکران وو هغوي لا تښتیدلي وو او لا په جنګ کښې قتل شوي وو ماسوائ د لیډي میکناټن او د مسز ټریور نه د نورو ټولو ښځو مال اسباب ضائع شوے وۀ او سوائ د اغوستو جامو نه ئ بل هیڅ څیز ملکیت نۀ وۀ پاتې شوے.

کۀ چرې محمد اکبر خان دا وخت هغوي په خپل حفاظت کښې نۀ وے اخستې نو د یخنۍ د لاسه به په دوئ کښې یوه ښځه هم ژوندۍ پاتې شوې نۀ وه او نۀ یو بچے. لفټیننټ ایري او والر هم دوئ سره یو ځاے لاړل. دا خو د انګریزي افسرانو د ښځو، بچو او زخمیانو حال وۀ. د هندوستاني افسرانو د ښځو او بچو د سپاهیانو د ښځو او بچو او زخمیانو بغیر د خداے نه بل محافظ هیڅوک هم نۀ وۀ او هم دغه شان د لوږې او واؤرو او څۀ د غلجو د ټوپکو نه هلاک شول.

هر کله چې دا ښځې او زخمیان افسران د محمد اکبر خان کیمپ ته رخصت شوې نو معلومه شوه چې د شاه د بې قاعدې رسالې سپاهیان او نور فوځیان په ډیر شمار کښې د فوځ نه تښتي او غازیانو سره شاملیږي. د فیرنګیانو دا ګمان وۀ چې دا د محمد اکبر خان په لمسه باندې تیښته کوي مګر هر کله چې هغۀ ته د دې شکایت وشو نو هغۀ بالکل انکار وکړو

او جنرل ايلفنستن ته ئ خبر ورکړو چې هر څوک چې ستا د فوځ نه تښتي نو تۀ ورسره خپل قانون کوه. چنانچه جنرل ايلفنستن ټول پاتې شوے فوځ په پريډ کښې راجمع کړو او ورته ئ حکم واورولو چې هر څوک چې د فوځ نه وتښتيدلو هغه به چاند ماري کيږي. لفټيننټ ايري وائي چې په دغه ساعت کښې يو چپړاسي عين د تيښتې په وخت کښې ونيولے شو او سمدستي د جنرل ايلفنستن په حکم باندې چاند ماري شو.

د نهمې جنورۍ شپه هم حسب معمول د مصيبتونو او د تکليفونو يو ناقابل بيان داستان دے ځکه چې نۀ فوځ سره د خپل خوراک او د يخنۍ نه د بچ کيدو سامان وو او نۀ محمد اکبر خان سره د کوشش حسب وعده خوراک را ورسولے شو او نۀ نور سامان.

سحر وختې په لسمه جنورۍ د هر يو سپاهي په مخ باندې د راتلونکي مرګ يو هيبناک تصوير رابښکلے شوے وۀ. او په ټول کيمپ کښې داسې يو سړے هم نۀ وۀ چې د هغۀ د خپل ژوند نه طمع نۀ وه قطعي شوے. په دې کسانو کښې د ډيرو پښې او لاسونه د واورو او څلې نه کوکله شوي وو او چې څوک د دې آفت نه بچ شوي وو نو هغوي د خپلې وسلې وچتولو قابل هم نۀ وو. د خوف او دهشت او د مرګ د ويرې نه ټول فوځ بې حس و حرکت شوے وۀ او د خلاصي هيڅ لار ئ نۀ ليده. په دغه ورځ د ګورۀ پلټن سره د يوې توپې او د پنځم نمبر رسالې د پنځوسو سورو په طور د ايډوانس ګارډ روان شول. تر دوۀ ميلو خو چا انګريزي فوځ سره هيڅ دخل ونۀ کړو ولې هر کله چې يوې تنګې درې ته هغوي ورسيدل نو د غلجو بيشماره ټولو د تنګې د دواړو طرفو نه په هغوي باندې يوه تباه کن ګوله باري شروع کړه په لږ ساعت کښې دا تنګے د مړو او د ژوبلو نه ډک شو. سپاهيانو دپاره نۀ خو مخکښې د خلاصي لاره وه او نۀ په وروستو. نۀ ښي طرف ته تښتيدے شو او نۀ ګس ته. د دې بې وسې او لاچارۍ په حالت کښې هغوي خپل خپل ټوپکونه او ګټړې وغورځولے او د خپل ځان د بچاؤ دپاره ئ کله يو خوا او کله بل خوا مخه کوله. ولې تورې په لاس غلجي د هغوي نه راتاؤ شو او ټول ئ بې دريغه قتل کړل. په دې مقام باندې قريباً ټول هندوستاني سپاهيان هلاک شول. او څۀ خزانه او د فوځ ساز و سامان چې لا د فيرنګيانو په لاس کښې وۀ هغه ټول د دې غلجو لاس ته راغلو. په دې اثنا کښې د ايډوانس نه څۀ ګوره پلټن او څۀ لږه رساله او د توپخانې څۀ سپاهيان چې په اسونو باندې سوارۀ وو سره د يوې توپې د دې تنګې نه قبر جبار ته چې پنځۀ ميله لرې وۀ په تيښته کښې کامياب شول. دا قريباً ټول ټال دوه نيم سوه کسان وو په قبر جبار کښې هغوي د رير د رارسيدو په انتظار کښې ايسار شول. ولې لږ ساعت پس ورته معلومه شوه چې په ټول فوځ کښې هم دغه کسان ژوندي پاتې شول. او نور ټول قتل او هلاک شول. قدرتي طور د فيرنګيانو محمد اکبر خان ته د دې حملې ډير سخت شکايت وليږلو ولې هغۀ د دې په جواب کښې ډير سخت اظهار افسوس وکړو او ورته ئ ووئيل چې

باوجود د انتهائي کوشش نه د غلجیانو دا قبائل زما د پاره قابو کول ناممکن دي او هغوي دومره په جوش کښې دي چې هغوي د خپلو خانانو خبرو باندې هم په دې معامله کښې غوږ نۀ ږدي.

د قبر جبار نه دا باقیمانده فوځ د هفت کوتل په اترایی باندې پنځۀ میله راکوز شو ولې په مخکښې یوه بله تنګه دره راغله چې د هغې په دواړو طرفو باندې هم د غرونو په سوکه د غلجو لوي لوي ټولي ناست وو خو هر کله چې دا فوځ په دې دره کښې رانوتلو نو دې غلجو هم ډزې شروع کړې او بیا ئې کافي سپاهیان قتل کړل.

د دې سپاهیانو نه علاوه جنرل ایلفنسټن او هغۀ سره پارټي هم محفوظه تزین ته راورسیدل او په هغه ځاے کښې ئې پړاؤ وکړو. تر دې وخته پورې د انګریزي فوځ نه قریباً دولس زره کسان سره د نوکرانو چاکرانو مړه شوي او قتل شوي وو. په دې ځاے کښې محمد اکبر خان د کپتان سکنر په خلۀ جنرل ایلفنسټن ته پیغام ولیږلو چې کۀ چرې باقیمانده سپاهیان وسله حواله کوي نو زۀ به هغوي د خپلو ملګرو سره په حفاظت صحیح سلامت جلال اباد ته ورسوم. مګر چونکې دومره سړي ما سره نشته چې د نوکرانو چاکرانو هم حفاظت وکړې شي له دې کبله هغوي دې د خداے اسرې ته پریښودې شي.

جنرل ایلفنسټن د کیمپ فالورز په دا شان پریښودو ته تیار نۀ وۀ. پس دا تجویز هغۀ نامنظور کړو. په تزین کښې د فوځ افسرانو پس د مشورې نه دا فیصله وکړه چې د جګدلک د درې نه شپه په شپه د دې نه وړومبے چې نور غلجي خبر شي او د خواوشا غرونه راته ونیسي وتل پکار دي. د تزین د پړاؤ نه تر جګدلک پورې قریباً دوه ویشت میله لار ده او تجویز دا وۀ چې دا ټوله لار دې د سحر تر ځیرې پورې ووهلے شي. خبره دا وه چې د جګدلک دره هم د خورد کابل او د تزین د درې په شان ډیره تنګه او سخته دره وه او د هغې دواړو طرفو ته هم وچت وچت غرونه پراتۀ دي. په دې غرونو باندې د غلجو په موجودګی کښې د ورځې تلل ناممکن وو پس د دریو ګینټو د ارام نه په اووۀ بجې ماښام انګریزي فوځ هم هغه شان ستړې ستومانه بیا روان شو او محمد اکبر خان ته ئې سوال جواب وکړو چې انګریزي فوځ صرف تر سیاه بابا پورې چې اووۀ میله لرې وۀ د تللو اراده لري.

په دغه ځاے کښې د انګریزانو نه اخري توپه پاتې شوه او ډاکټر کارډیو هم هغې سره د مجروحۍ په حالت کښې پریښودې شو. هم دغه شان ډاکټر ډف د ستومانۍ نه بیهوشه د سیاه بابا په لاره کښې پریښودے شو او دا دواړه ډاکټران په لاره کښې د یخنۍ نه هلاک شول. تر سیاه بابا پورې خو دې فوځ ته هیڅ ځۀ ونۀ وئیل مګر هر کله چې دوئ د سیاه بابا نه وړاندې شول نو د فوځ په ریر باندې یو ځو ډزې وشوې. په دې باندې ټول کیمپ فالورز (نوکران چاکران) بیا د فوځ مخې ته ورغلل او د جنګ سپاهیانو سره ئې ځان شامل کړو لاره

چونکې تنګه وه له دې کبله بیحده ډیر اړې ګړې پیدا شو. هر څومره چې هغوي وړاندې کیدل هغه هومره په هغوي باندې د چارچاپیره غرونو نه د جزائلو باړونه چلیدل. د باریکاب په مقام باندې د غلجو دې حملې نور هم خطرناک صورت اختیار کړو او کیمپ فالورز چې لا هم هغه شان زر دوه زره خلق وو لکه د وحشت زده ګډو په شان به په هر یو ډز حیران پریشان کله وړاندې او کله وروستو تښتیدل. په دغه منتشر او سراسیمه حالت کښې دا فوځ کټرسنګ ته راورسیدو. د کټرسنګ نه دوئ په اتۀ بجې سحر په یولسمه جنوری روان شو جګدلک لا هم هغه شان لس میله لرې وۀ اوس ښه رڼا شوې وه او په چارچاپیره غرونو باندې د غلجو بیشماره اولسونه جزائل په لاس د دې فوځ په انتظار کښې ناست وو.

بریګیډیر جنرل شیلټن خپل باقیمانده ستړي ستومانه سپاهیانو سره په ډیرې بهادرۍ او زړورتیا د دې غلجو مقابله وکړه مګر د انګریزي فوځ ویشتونکي خلق ډیر کم شوي وو له دې کبله هیڅ څۀ خاص اثر په غلجو ونۀ شو. او دا فوځ او کیمپ فالورز د غلجو د تباه کن جزائل د لاسه نور هم ډیر خراب شو او ډیر خلق بیا په تړوله لار باندې د هغوي نه مړۀ شول. تر جګدلک پورې یوه چپه لار هم د غلجو نه خالي نۀ وه او تړوله لار د مړو او د زخمیانو د وینو نه سره شوه. د ډیرو مصیبتونو او تکلیفونو نه پس ایډوانس په درې بجې د ماسپښین جګدلک ته راورسیدو او د لارې په خوا کښې ئې په یو وچت ځاے باندې پړاؤ وکړو. په دې ځاے کښې انګریزي افسران او سپاهیان د ارام دپاره پریوتل ولې لا ډیر ساعت نۀ وۀ تیر شوے چې په وچتو وچتو غرونو باندې ډیر غلجیان وختل او په انګریزي فوځ ئې بیا ډزې شروع کړې.

تر دې وخته پورې انګریزانو لا جلال آباد نۀ وۀ خالي کړے او د محمد اکبر خان دا یقین وشو چې جنرل ایلفنسټن په هر شان چې وي ځان خلاف وعده جلال اباد ته د جنرل سیل فوځونو سره د یو ځاے کیدو دپاره رسوي. حالانکې اقرار دا وۀ چې انګریزي فوځ به د تزین نه وړاندې نۀ ځي. تر څو پورې چې جلال اباد خالي شوے نۀ وي. په دې سبب محمد اکبر خان جنرل ایلفنسټن ته درې نیمې بجې د کپتان سکنر په خلۀ پیغام راولیږلو چې لا تراوسه پورې جلال اباد خالي شوے نۀ دے نو تۀ ماله په دې باندې د مزید خبرو اترو دپاره د جرګې په غرض راشه او في الحال بریګیډیر جنرل شیلټن او کپتان جانسن ماله د جلال اباد د خالي کولو دپاره نور یرغمال راکړه. جنرل ایلفنسټن بریګیډیر اینکویټیل له کمان ورکړو او د محمد شاه خان په حفاظت کښې سره د بریګیډیر شیلټن او د جانسن د محمد اکبر خان کیمپ ته روان شو. محمد اکبر خان هغوي ډرې واړه په ډیر قدر او عزت خپل ځاے ته راوستل. او یو پرتکلف ډوډۍ ئې هغوي له ورکړه. بیا ئې هغوي یوې وړې خیمې ته بوتلل او په هغې کښې هغوي اودۀ شول په دغه ورځ هم غلجو په انګریزي کیمپ باندې متواتر ډزې

وکړې مګر اوس انګریزي فوځ ته د اوبو تکلیف پیښ شو. اګر چې په خوا کښې یوه ډیره بنکلې د آئینې په شان صفا د اوبو چینه د غرۀ په ویخ کښې بهیدله مګر هر طرف ته دومره غلجي پراتۀ وو چې د هغې نه اوبۀ څښل لا راوړل ناممکن وو. کومه واوره چې په زمکه باندې پرته وه هغه سپاهیانو په ډیر شوق باندې وکړپوله. مګر هغې د تندې د وژلو په ځاے د هغوي خلې نورې هم وچې کړې. د خوش قسمتي نه په دې سفر کښې درې غوایان بچ شوي وو هغه فوراً حلال کړې شو او د هغوي کچه غوښه ډیره په مزه سپاهیانو وخوړله.

په دولسمه جنورۍ بیشماره ډیر غلجي خانان د محمد اکبر خان سلام له راغلل او قریباً نهۀ بجې د سحر یوه لویه جرګه د دې خانانو پشمول د دریو انګریزانو وشوه. غلجو په دې جرګه کښې ډیرې سختې خبرې د فیرنګیانو برخلاف وکړې او د نفرت اظهار ئې وکړو. محمد اکبر خان تر ډیر ساعته پورې د هغوي د قلارولو او د رضا کولو کوشش وکړو بلکې د خپل ځان نه ئې ورله د څۀ روپو د ورکولو اقرار هم وکړو خو هیڅ فیصله ونۀ شوه. او ورځ هسې په جرګو کښې تیره شوه. اخر جنرل ایلفنسټن د محمد اکبر خان نه خپل فوځ سره د شاملیدو اجازت وغوښتو او ورته ئې ووئیل چې دا د فوځي قانون نه سخته مخالفه خبره ده چې زۀ دې د خطرې په وخت د خپل فوځ نه جدا یم. او له دې سببه ماله د داسې بې عزتۍ د ژوندون نه مرګ بدرجها بهتر دے مګر محمد اکبر خان بدستور د هغۀ په رخصتولو کښې لیت ولعل کولو او په دې چل ئې هغه هم په طور د یرغمال ځان سره وساتلو. هم په دغه ورځ یعنې په دولسمه جنورۍ سحر میجر تهین د جنرل ایلفنسټن اے ډي سي او سټاف افسر چې یو ډیر بهادر او قابل انګریزي افسر وۀ د یو غلجي د لاسه په تماچه باندې په مخ زخمي شو او په درې بجې ماسپښین مړ شو.

هر کله چې ماښام نزدې شو نو غلجیانو بیا سخته ګوله باري په انګریزي کیمپ باندې شروع کړه. له دې کبله په دې مقام باندې نور پاتې کیدل ناممکن وو پس هغوي په خپل مخ سر د جلال اباد په طرف د جګدلک په دره باندې بې سروسامانه ورننوتل. دا دره دوه میله وږده ده او ډیره تنګه ده هر کله چې دا ټولے د دې درې سر ته ورسیدو نو غلجو بیا یوه سخته پرجوش حمله په دوئ وکړه او دولس انګریزي افسران چې په هغې کښې بریګیډیر جنرل اینکویټهیل او کرنل چیمبرز هم شامل وو قتل شول. د دوئ نه علاوه نور ډیر سرې هم په دې ځاے کښې ضائع شول. صرف څلویښت تنه سپاهیان او څۀ لږ شان رساله د دې درې نه ژوندي ووتل. مګر څۀ وخت چې دوئ سرخاب سیند ته راورسیدل نو په پُل باندې غلجو د وړاندې نه قبضه کړې وه. دې ورکوټي ټولي په ګودر باندې د پورې وتو کوشش وکړو ولې په هغه ځاے کښې هم غلجو په هغوي ډزې وکړې. اخر د دیارلسم جنورۍ په سحر دا بدقسمته ټولے ګندمک ته راورسیدو مګر د دوئ د مقابلې دپاره دومره غلجي په وړاندې او

وروستو راجمع شوي وو چې د هغوي دپاره په سمه لاره باندې تلل ناممکن وو. پس هغوي په يو غرهٔ باندې ور وختل او دې غلجو سره ئ جنګ جوړ کړو. په دې منځکښې يو څو پښتانهٔ سوارهٔ د ګندمک د طرف نه راښکاره شول دې سورو ته لفټيننټ هے اشاره وکړه او د صلح کولو دپاره ئ ورته تجويز پيش کړو. په دې باندې ټولو غلجو ډزې بندې کړې. ميجر ګرفتهه او مسټر بليويټ د يو خان په وينا هغوي سره د جرګې کولو په غرض ورکوز شول ولې لږ ساعت پس نورو غلجو ګورؤ سپاهيانو سره د وسلې په اخستو باندې جنګ شروع کړو او بيا جنګ ونښتو. د غلجو نشانه بازو يو يو افسر او يو يو سپاهي په خپلو بې خطا ګوزارونو باندې مړهٔ کړل. دا ښه وه چې ميجر ګرفتهه او مسټر بليويټ هغې پښتنو سورو خان سره د يوې خوا قلا ته بوتلل. او په دې سبب د دې قتل عام نه بچ شول. په باقيماندو کښې صرف کپتان سوټر سره د څلورو ګورو سپاهيانو ګرفتار شو. کپتان سوټر د خپلې پلټنې جنډه د جګدلک نه د روانيدلو نه وړومبی ملا پورې تړلې وه او په دې طريقه هغهٔ د خپلې پلټنې جنډه بچ کړه. د خپلې پلټنې جنډه بچ کول د يو فوځي افسر اولين فرض دي. او د دې غرض دپاره کهٔ هغه خپل سر ورکړي نو مناسب ګڼلے شي. د جګدلک د درې نه قريباً دولس تنهٔ په اسونو باندې سوارهٔ د باقي فوځ نه وړاندې په تيښته وتي وو. په دوئ کښې شپږ تنه خو په لاره مړه شول مګر شپږ افسران يعنې کپتان بيلو، کپتان کولير، کپتان هاپکنز، لفټيننټ برډ ډاکټر هارپر او ډاکټر برائيډن فتح اباد ته صحيح سلامت راورسيدل.

په دې ځاے کښې د کلي په خوا کښې بعضې خلقو هغوي له ډوډۍ راوړه ولې هر کله چې د کلي نور خلق خبر شو نو سمدستي ورپسې راووتل او کپتان بيلو او لفټيننټ برډ ئ قتل کړل. او کپتان کولير، کپتان هاپکنز ډاکټر هارپر او ډاکټر برائيډن په اسونو باندې سوارهٔ وتښتيدل مګر بې رحمه غلجو په دوئ پسې هم تعاقب وکړو او ماسواۓ د ډاکټر برائيډن نه باقي درې واړه ئ د جلال اباد نه څلور ميله بهر لاندې کړل او قتل ئ کړل صرف ډاکټر برائيډن د تمام انګريزي فوځ نه د لوږې او تندې شه په اس باندې سور جلال اباد ته راورسيدو.

## باب

کومې انګريزي ښځې او زخميان افسران چې په نهمه جنورۍ د محمد اکبر خان په حفاظت کښې سپارلے شوے وے او د باقي فوځ نه جدا راوستے شوے وے د هغوي نومونه دا دي:

(۱) ليډي ميکناټن

(۲) لیډي سیل (ز)
(۳) مسز سټرټ او د هغې لور
(۴) کپتان بوائیډ او د هغهٔ ښځه او بچے
(۵) کپتان اینډرسن د هغهٔ ښځه او بچے
(۶) لفټیننټ والر د هغهٔ ښځه اوبچے (ز)
(۷) لفټیننټ ایري د هغهٔ ښځه او بچے (ز)
(۸) مسټر رائلي د هغهٔ ښځه او بچے
(۹) مسټر ټریور او د هغهٔ اووهٔ بچي
(۱۰) مسټر مین ویرنګ او د هغهٔ بچے
(۱۱) کپتان ټروپ (ز)
(۱۲) لفټیننټ مین (ز)
(۱۳) سارجنټ سره د خپلې ښځې او بچو

چې د چا نوم ته په بریکټ کښې (ز) لیکلې شوې ده هغوي زخمیان وو دا خلق چې څهٔ وخت د محمد اکبر خان کیمپ ته راورسیدل نو د مزید حفاظت دپاره هغوي یوې قلا ته ولیږلے شول په هغه ځاے کښې میجر پوټنګر، کپتان میکنزي او کپتان لارنس چې په بتخاک کښې په طور د یرغمال محمد اکبر خان له ورکړے شوي وو د وړومبے نه موجود وو او د دوئ په خوا کښې د کپتان او د مسز بوائیډ هغه زوے هم ناست وهٔ چې د خورد کابل په دره کښې د هغهٔ نه ورک شوے وهٔ. هرکله چې کپتان او مسز بوائیډ خپل ماشوم زوے ژوندے او محفوظ ولیدلو نو د هغوي د خوشحالی څهٔ حد پاتې نهٔ شو ځکه چې د هغهٔ د ژوند نه خو هغوي طمع بالکل قطعي کړې وه. دا هلک د ورکیدو نه پس اتفاقاً د محمد اکبر خان د یو نوکر په لاس ورغلو او هغهٔ محمد اکبر خان له راوستو. او محمد اکبر خان د میجر پوټنګر په حفاظت کښې هغه ورکړو اګر چې دا ځاے د فیرنګو ښځو او د افسرانو د وسیدو قابل نهٔ وهٔ مګر د انقلاب په وخت کښې د دې مصیبت وهلي ټولي دپاره دا ځاے هم یو جنت وهٔ لفټیننټ ایري په خپل کتاب کښې د دې ځاے د استوګنې حال دا شان لیکي :

"But even this state of things was heaven itself compared with the cold and misery we had been suffering in camp on the bare snow, and we felt most thankful for the change. The courtyard was already crowded with the friends and relations of Mohd Akbar, whose bearing towards us was exceedingly kind and courtious; but their presence obliged the ladies to remain closely immured in their dark cells. In the course of the afternoon the chief himself made his appearance, and having requested an interview with Lady Macnaughten, impressed to that lady his sorrow at having been instrumental to her present misfortunes, and his desire to contribute

to her comfort as long as she remained his guest. But an Afghan nobleman's ideas of comfort fall very far short of an English peasant's; and we soon learnt to consider spoons, and forks and other table gear as effeminate luxuries, and plunged our fingers unhesitatingly into the depths of greasy Pollaw, for which several of us scrambled out of one common dish, the warmth of a wood fire , though essential to protect us from the severe extreme of colds, could only he enjoyed at the expense,of being blinded and half stifled by the smoke. The bare ground was our only bed, and postins or sleep skin cloaks our only covering; but these and various other inconveniences were indeed of small moment, when weighed in the balance against the combination of horrors we had escaped and which still encompassed our unhappy countrymen and fellow soldiers in camp."

ترجمه : "مگر دا حالت هم د جنت په شان وهٔ څهٔ وخت چې مونږ د هغې مقابله هغې سردی او مصیبتونو سره وکړه د کوم په سبب چې مونږ ته په کیمپ کښې په بربنډه واوره سخت تکلیف شوے وهٔ او مونږ په دې حالت هم ډیر شکرگزار وو. په غولي کښې د وړومبے نه د محمد اکبر خان د دوستانو او خپلوانو جم غفیر موجود وهٔ او اگر چې د هغوي رویه بیحده ډیره د مهربانۍ او شریفانه وه مگر د هغوي د موجودگی په سبب زمونږ زنانه په هغه توړو کوټو کښې قیدې کښیناستې . د ماسپښین نه پس سردار پخپله هم راغلو او لیډي میکناټن سره ئې د ملاقات کولو خواهش ظاهر کړو او هغې ته ئې ووئیل چې زهٔ ډیر افسوس کوم چې زهٔ ستا د موجوده تکلیفونو باعث شوے یم او زما دا خواهش دے چې زهٔ ستا د ارام دپاره پوره کوشش وکړم تر کومه پورې چې تهٔ زما میلمنه ئې.

مگر د یو پښتون سردار د ارام اندازه د یو معمولي فیرنگي زمیندار نه هم ډیره کمه ده او په لږ ساعت کښې راته معلومه شوه چې قاشوغې او کانټې او نور د خوراک د میز ساز و سامان زمونږ دپاره د زنانو یو عیش دے. پس مونږ بې تکلفه خپلې گوتې په غوړ پلاؤ کښې ور ومنډلے او د یوې شریکې غورۍ نه مونږ ټولو نوړۍ وچتې کړې اگر چې د لرگو د اور گرمي د انتهائي درجې یخنۍ نه د بچ کیدو دپاره ضروري وه مگر سره د دې د هغې لوگي زمونږ سترگې ړندې کړې او ساه ئې راله بنده کړه. تش بربنډه زمکه زمونږ بستره وه او پوستینونه مونږ په ځان اچولي وو مگر دا او نور د بې ارامۍ ډیر څیزونه هیڅ نهٔ وو څهٔ وخت چې مونږ د هغې مقابله هغې مصیبتونو سره وکړه چې د کوم نه مونږ نجات بیاموندے وهٔ او په کوم کښې چې زمونږ بدقسمته وطنیان او ملگري فوځیان لا هم هغه شان پراتهٔ وو."

یو پښتون ته به د لفټیننټ ایري دا شکایت څومره ناجائزه ښکاره کیږي څهٔ وخت چې هغه دا محسوس کړي چې دا د انقلاب ورځې وے او په ټول وطن کښې هیڅ منظم حکومت موجود نهٔ وهٔ په تمام ملک کښې اړے گړے وهٔ او محمد اکبر خان د خپل صدر مقام نه ډیر لرې د فوځ یوې دستې سره په دیهاتي علاقه کښې روان وهٔ. په دې ځائے کښې نهٔ

خو د استوګنې خاطر خواه انتظام کيدے شو اونۀ د خوراک څښناک. کۀ چرې هغۀ دې زنانوؤ ، بچو، او زخميانو له د خپل فوځ د ضروورياتو نه څۀ خيمې بچ کړې وے او په هغې کښې ئ وسولے وے نو هغوي به د يخنۍ او د واؤرو د لاسه مړۀ وو. لاچار هغۀ هغوي د هغې ځاے د يو مشر قلا ته بوتلل چې کم نه کم د بې انتها يخنۍ د لاسه خو بچ وي.

بيا هر فيرنګي ته دا معلومه ده چې د پښتنو په ملک کښې خلق خوراک په قاشوغو او په کانټو باندې نۀ کوي او چونکې دا محمد اکبر خان ته بالکل معلومه نۀ وه چې زۀ به په لاره کښې د فيرنګيانو د ښځو او زخميانو دخوراک انتظام په خپل سر اخلم له دې کبله د هغوي په خاطر هغۀ ځان سره د کابل نه نۀ خو قاشوغې راوړے وے او نۀ کانټې. د دې نه علاوه په ميدان جنګ کښې د دې قسم سامان د يو سپه سالار دپاره وړل ځومره مشکل کار دے په داسې حالت کښې د محمد اکبر خان دپاره دا ناممکنه وه چې هغه دې د زنانوؤ دپاره جدا مکان د استوګنې دپاره ورکړے وے او لا ئ هغوي له د خوراک دپاره کانټې ، چړې او قاشوغې پيدا کړے وے. په داسې واقعاتو کښې او په داسې ځاے کښې د ارام د دې ځيزونو د غير موجودګۍ په سبب د ټول پښتون قوم په معيار زندګۍ باندې حمله کول بالکل ناجائز دي بيا د کلي په يو کور کښې د اور د بلولو دپاره د جدا نغري طمع کول هم غلط کار دے. د خوراک په باره کښې چې لفټيننټ ايري د غوړ پلاؤ شکايت کړے دے او د يوې شريکې غورۍ نو دا هر يو فيرنګي ته معلومه ده چې څۀ وخت يو پښتون د خپل ميلمه بيشانه ډير عزت او خاطر کول غواړي نو هغه ورله پلاؤ پوخ کړي. او دا شان يو فيرنګے به هم بيا نۀ موندے شي چې هغه د پلاؤ تعريف ونۀ کړي.

د جنګ په وخت کښې او په دا شان واقعاتو کښې د محمد اکبر خان دې ښځو، بچو او نورو فيرنګيانو له پلاؤ ورکول د هغۀ د انتهائي درجې د مهمان نوازۍ او د دې ټولې د خاطر او قدر کولو ثبوت دے. په کلي کښې د دومره ډيرو ميلمنو دپاره بيله بيله رکيبۍ پيدا کول هم يو ډير مشکل کار دے. د دې دپاره مجبوراً د هغوي په مخکښې لويې لويې مجمې او غورۍ کښيښودے شوے او هم دغه د پښتنو رواج دے. هم دغه شان دومره ميلمنو دپاره کټونه پيدا کول په جنګ کښې او په مسافرۍ کښې ناممکن وو ولې چې ټول افغانستان کښې د ژمي په موسم کښې خاص و عام خلق د سختې يخنۍ په وجه په زمکه ځملي ځکه چې په زمکه باندې مقابلتاً د کټ په نسبت يخني کمه وي او دا رواج عام طور سره په مشرق کښې په هغه ټولو ملکونو کښې بياموندے شي په کومو کښې چې سخته واؤره او سردې پريوځي او دا طريقه د ملاستې ځو ځو فيرنګيانو د ځان دپاره هم په دې ملکونو کښې خوښه کړې ده. هم دغه رنګ په ټولو يخو ملکونو کښې د بړستنو په ځاے خلق پوستينونه د شپې اغوندي ځکه چې هغه د مالوچو په نسبت زيات ګرم او ارام ده وي.

په یولسمه جنوری قریباً یولس بجې د سحر دا زنانه او سړي د ښۀ ارام نه پس د پنځو سوؤ سورو په حفاظت کښې تزین ته روانې شوې. او سړو ته اجازت ورکړې شو چې کۀ چا دربانـدې حـملـه وکړه نو بیشکه خپلې تماچې او تورې وغیره استعمالوئ. انګریزي فوځ یو ورځ وړومبے هم په دغه لار تیر شوے وۀ. او کوم منظر او تماشه چې دې ښځو او سړو په دې لاره ولیده هغه نهایت حسرتناکه او افسوسناکه وه تر میلونو پورې په لاره باندې واؤره د وینو نـه لړلے وه او په ټوله لاره باندې د مقتولینو او د ژوبلو نعشونه پراتۀ وو. بعضې خلق لا هم هغه شـان زخـمـیان وو او ویـنـې تـرینه بهیدلے او ژړا او فریادونه ئ کول. بیشماره ډیرې ښځې او بـچـي چـې هـنـدوستانیان وو د یخنی نه کوکله شوي وو اود مړو د پاسه پراتۀ وو ولې لا ترینه سـاه نـۀ وه ختلے. دې ټولي د میجر سکاټ ، د میجر ایورټ او د ډاکټر بائس لاشونه په دې مـړو کښې وپیژندل ماښام قریب دا ټولے تزین نه قریباً شپاړس میله فاصله باندې راورسیدو او شپـه ئ د محمد خان په قلا کښې تیره کړه. په دې قلعه کښې لفټیننټ میلولي هم موجود وۀ. چې په لسم تاریخ ئ ځان د څۀ معمولي زخمونو نه پس محمد اکبر خان ته حواله کړے وۀ.

په دولسمه جنوری قریباً لس بجې سحر دا ټولے بیا د تزین په دره کښې ورداخل شو د تـزیـن او سیـاه بـابـا په منځکښې هغوي ته د پرون په شان بیا ډیر وحشتناک مناظر مخې ته راغـلـل. هغوي د بیشماره مقتولینو او مجروحینو نه چې په هغې کښې ډاکټر ډف، او ډاکټر کـارډیو شامل وو نور بیشماره د لوږو او تندو وهلي کیمپ فالورز اخوا دیخوا په کندو کښې د یـخـنـی نـه د ځان سـاتـلـو دپاره پراتۀ ولیدل. د سیاه بابا په خوا کښې دې ټولي سره ډاکټر میککرتهـ چې په لسم تاریخ د غلجو په لاس کښې قیدي شوے وۀ شامل شو. دې ټولي شپه د سروبي په قلا کښې د عبدالله خان غلجي سره تیره کړه.

په دیـارلـسـمـه جنوری لس بجې سحر دوئ بیا جګدلک طرف ته روان شو او قریباً مـاښـام هـغـه ځـاے ته ورسیدل په کوم ځاے کښې چې د هغوي نه وړومبے انګریزي فوځ دیره کـړې وه. پـه دې ځاے کښې هم د مړو ډیرې پراتۀ وو. په دې ځاے کښې هغوي شپه په دریو خیـمـو کـښـې تیـره کـړه او ورتـه دا هـم مـعـلـومه شوه چې محمد اکبر خان جنرل ایلفنسټن ، بریګیډیر شیلټن ، او کپتان جانسن هم په طور د یرغمال ځان سره ایسار کړي دي.

په څوارلسمه جنوری دا ټول کسان قریباً نمر ختو سره د محمد اکبر خان او د هغۀ د مـلـګـرو سـره د کټواز قلعه طرف ته روان شول. دا قلعه د جګدلک نه قریباً څلیریشت میله لرې وه او د پنجشیر سیند په ښی غاړه پرته وه.

په پـنـځـلـسـمـه جنوری سحر وختي دا ټول خلق بیا روان شو او د یو څو سوؤ ګزو د سفـر نـه پـس د دریائے کابل غاړې ته راورسیدل. دا ټولے په ډیر تکلیف او مشکله د سیند نه پـورې وتـو او اګـرچـې نـور ډیـر سـړي او ټـټوان د اوبو د تیزوالي په وجه ډوب شول مګر د

محمد اکبر خان په کوشش سره په انګریزي افسرانو، ښځو او بچو کښې هیڅوک هم ضائع نۀ شول. لفټیننټ ایري لیکي چې :

" Nothing could exceed the politeness and attention of Mohd Akbar on this occasion, who manifested the greatest anxiety until all had crossed over in safety."

ترجمه : ”په دې موقع د محمد اکبر خان د شرافت او د توجه څۀ حد پاتې نۀ شو او تر څو پورې چې مونږ ټول په حفاظت پورې وتي نۀ وو نو هغۀ سخت کوشش او سعي کوله.“

دا ټولے اوس د لغمان په زرخیزه دره کښې روان وۀ. هرکله چې دوئ شپاړس میله لار ووهله نو قریباً درې بجې ماسپښین دوئ د تورغري مقام ته ورسیدل. لفټیننټ ایري د خپلو پښتنو ملګرو چې په دې موقع هغوي سره په طور د بدرګې روان وو د خوش طبیعتۍ او د خوش مذاقۍ په بابت او په کومه طریقه چې هغوي د دې مصیبت زده انګریزي ټولي د خوشحالولو او د غم غلطولو کوشش کولو دا رنګ لیکي :

" We found the Afghan gentry most agreeable travelling companions, possessing a ready fund of easy conversation and pleasantry, with a certain rough polish and artless independence of manner, which, compared with the studies servility and smooth toughed address of the Hindustani nobles seldom fails to impress our countrymen in their favour."

ترجمه : ”مونږ ته معلومه شوه چې پښتانۀ خانان په سفر کښې ډیر خوش طبیعته ملګري دي او په هغوي کښې د خوش ګفتارۍ، خوش مذاقۍ او حاضر جوابۍ یوه خاصه ملکه موجوده ده او د هغوي په وضع کښې یو دا شان ساده شائستګي او قدرتي بیباکي ده چې څۀ وخت مونږ د هغې مقابله د هندوستان د امیرانو مصنوعي خوشامدګرۍ او چرب زبانۍ، چاپلوسۍ سره وکړو نو د پښتنو د دې وضعې زمونږ د وطن په خلقو همیش ډیر ښۀ اثر کیږي.“

په شپاړسمه جنورۍ دا ټول ټولے د تورغري په مقام باندې دیره شو او اګرچې د محمد اکبر خان خپل نیت په دې ځاے کښې د ډیرو ورځو د پاتې کیدو نۀ وۀ مګر چونکې د دې ځاے خلق د فیرنګیانو نه سخت خلاف وو نو هغۀ سره دا ویره پیدا شوه چې هسې نه چې هسې نه په دوئ باندې ناساپه حمله وشي. پس په اوولسمه جنورۍ یوولس بجې سحر لاچار هغه سره د دوؤ سوؤ جزائلچیانو دا ټولے بیا ځان سره روان کړو. تر دې وخته پورې ډیر هندوستاني نوکران لا دې ټولي سره په وفادارۍ باندې روان وو مګر اوس هغوي نور تکلیف نۀ شو برداشت کولے له دې کبله هغوي د تورغري په مقام باندې د هغوي نه پاتې شول. اتۀ میله لار وهلو نه پس دا ټولے بدیع اباد ته راورسیدو. چې د محمد شاه خان غلجي کلے وۀ. محمد شاه خان خپله یوه قلعه د دې خلقو د استوګنې دپاره خالي کړه. دا ځاے په نسبت د نورو ټولو ځایونو نه زیات د ارام ځاے وۀ. دا قلعه د مربع په شکل کښې اتیا ګزه وړده او اتیا ګزه پلنه وه او قریباً پنځویشت فټه وچت دیوالونه ئ وو په هر یو ګوټ باندې ئ یو یو لوړے

برج جوړ شوی وۀ او چارچاپیره د هغې نه کهی کنستې شوې وې. دننه په قلعه کښې ډېرې ښکلې ښکلې کمرې د زنانوؤ او د سرو دپاره جدا جدا جوړې شوې وې. محمد شاه خان د محمد اکبر خان سخر وۀ او د فیرنګیانو افغانستان ته د راتلو نه تر دې وخته پورې هغۀ د هغوي اطاعت نۀ وۀ قبول کړې. محمد اکبر خان او د هغۀ د ترۀ زوي سلطان محمد خان چې د سلطان جان په نوم باندې مشهور وۀ تر بدیع اباد پورې دې ټولې سره ملګرې راغلل.

په دې مقام باندې محمد اکبر خان او سلطان جان دواړو د دې ټولې د ارام دپاره خپل ټول وس وکړو ځکه چې هغه د دې ځاې نه د جلال اباد په طرف د جنرل سیل د مقابلې دپاره د روانیدو نیت کړې وۀ. لفټیننټ ایري وائي چې :

" Both he ( Sultan Jan ) and the Sardar ( Mohd Akbar Khan ) were equally kind and courtious; but the later is in manner a more perfect gentleman, and never, like his cousin, indulges in comparisons to the disadvantage of the English, of whom he invariably speaks with condour and respect."

ترجمه : " هغوي دواړه یعنې سلطان جان او سردار محمد اکبر خان یو شان مونږ سره مهرباني او خوش اخلاقي کوله مګر په عام اخلاق کښې سردار محمد اکبر خان زیات مهذب دې او هیڅرې هم د خپل ترۀ د زوي په شان په خپله مقابله کښې د انګریزانو بد نۀ وائي بلکې همیش د هغوي ذکر په صفایۍ او په عزت سره کوي."

محمد اکبر خان ته اوس په دې مقام تسلي وشوه چې جنرل سیل د جلال اباد د خالي کولو نه قطعاً انکار کوي اګر کۀ پوټنګر او جنرل ایلفنسټن دواړو هغۀ او کپتان میګریګر پولیټیکل افسر ته متواتر احکام د دې غرض دپاره استولي وو. هم د دغې عهدشکنۍ ویره وه چې د اولس خلق ئې دې ته ولمسول چې انګریزي فوځ ته دې دومره مصیبتونه او تکلیفونه پیښ کړي. دیخوا د کابل د انګریزي فوځ د افسرانو د اول ورځې نه دا کوشش وۀ چې په څۀ شان ځان صحیح او سلامت جلال اباد ته ورسوؤ. نو دا قدرتي خبره وه چې محمد اکبر خان او نور سردارانِ کابل سره دا خوف وۀ چې کۀ چرې دا فوځ روغ جوړ د جلال اباد د خالي کولو نه وړومبې وړومبې د جنرل سیل فوځ سره یو ځاې شي نو دا ډېره اغلبه ده چې دوئ بیا په اتفاق سره په افغانستان باندې حمله وکړي. کۀ چرې جنرل سیل د هغې عهدنامې د شرطونو په مطابق چې کومه سرداران کابل او د جنرل ایلفنسټن او د میجر پوټنګر په منځکښې شوې وه د جلال اباد نه وتې وې نو غالباً چې د انګریزي فوځ به دا شان نقصان نۀ وۀ شوې او نۀ به محمد اکبر خان ساعت په ساعت نور نور یرغمال د فیرنګیانو نه غوښتل. فیرنګیانو سره دا سمجهوته شوې وه چې انګریزان به د تزین نه مخکښې نۀ ځي. تر څو چې جنرل سیل جلال اباد نۀ وي خالي کړې. مګر جنرل ایلفنسټن هم د دې شرط څۀ پروا ونۀ کړه او فوځ د تزین نه وړاندې روان شو هم په دې سبب محمد اکبر خان جنرل ایلفنسټن په

خپله ځان سره په طور د يرغمال وساتلو.

په اتلسمه جنورۍ محمد اکبر خان او سلطان جان د بديع اباد نه په جلال اباد د حمـ ې کولو په غرض روان شول او د فيرنګيانو دا ټولے ئ هم هغه ځاے کښې پريښودو. دوئ دواړه د بديع اباد تورغري ته راغلل او په هغه ځاے کښې ئ د جنګ تيارے شروع کړو. سره د دې چې دا دواړه سرداران د جنګ په تيارۍ کښې سخت مصروف وو ولې بيا هم دوئ وخت ناوخت د دې ټولي د خير خيريت د خبر اخستو دپاره بديع اباد ته راتلل. چنانچه په درويشتمه جنورۍ چې هغوي ته دا معلومه شوه چې دې ټولي ته د روپو ضرورت دے نو په څليريشتم تاريخ ئ ورله نورې روپۍ راواستولے.

په نهۀ ويشتمه جنورۍ دې ټولي له د جلال اباد د فيرنګيانو د محمد اکبر خان په اجازت د هغۀ د سړو په لاس ډيرې چيټھي، اخبارونه، جامې او نور ډير د ارام څيزونه راواستول. د جلال اباد ځني فيرنګيانو د اخبارونو په بعضې ټکو دا شان نښې وکړې چې د هغې نه پوره پوره فقرې جوړې شوې او په دغه طريقه ئ خپلو ملګرو ته خبرونه ورکول چې د هغوي د امداد دپاره معاملات څۀ رنګ روان دي. هم په دې ذريعه هغوي ته دا معلومه شوه چې د بريګيډير وائلډ فوځ د خيبر نه په راپورې وتو کښې ناکامياب شو مګر جنرل مالک د هندوستان نه د امداد دپاره راروان دے. هم په دې ذريعه دا ټولے د دې نه هم خبر شو چې د ټول انګريزي فوځ نه يواځې ډاکټر برائيډن جلال اباد ته ژوندے رارسيدلے دے.

په پنځلسم د فرورۍ عبدالغفور خان او دوست محمد خان ميجر ګرفتھ او مسټر بليوټ دې ټولي سره يو ځاے کړل. چونکې په دې ټولي کښې ميجر پوټنګر، کپتان ميکريګر سره چې په جلال اباد کښې وۀ پټ خط و کتابت کولو له دې کبله محمد اکبر خان دې ټولو فيرنګيانو نه وسله د خپل خفګان ښکاره کولو دپاره واخسته او ميجر پوټنګر ته ئ ووئيل چې کۀ چرې بيا دا قسم خط و کتابت ونيوے شو نو ستا به هم د ميکناټن غوندې حال شي. هم په دغه ورځ کپتان سوټر هم دې ټولي له راوستے شو.

په نولسمه فرورۍ 1842ء يوه عظيم الشان زلزله راغله دا زلزله دومره سخته وه چې د بديع اباد د قلعې لوے لوے ديوالونه په ډير زور سره راپريوتل. او د غر هر يو خوفناک اواز د زمکې د لاندې نه واؤريدے شو د خواوشا ټول ځايونه وجړقيدل مګر په قيديانو کښې د خوش قسمتۍ نه هيڅا ته هم څۀ نقصان ونۀ رسيدو. ځکه چې د زلزلې په ابتدا کښې دوئ ټول د کوټو نه راووتل. وائي چې د دې زلزلې نه د چار چاپيره علاقې کلو ته ډير زيات نقصان وشو.

په يويشتمه فرورۍ جنرل ايلفنسټن او بريګيډير شيلټن ته د محمد اکبر خان په حکم خپلې خپلې تورې واپس ورکړې شوې. په درويشتمه فرورۍ کپتان بائي ګريو هم بديع اباد

ته راوستے شو. دا کپتان سره د یو انګریز سوداګر مستر بینیس د جګدلک نه په دولسمه جنوری په تیښته جلال اباد طرف ته روان شوے وۀ او د یو ډیر مصیبت ناک سفر نه پس اخر د ستومانۍ او د یخ په سبب د تلو نه پاتې شوي وو. مستر بینیس خو په ځاے پاتې شو او بائي ګریو د کچ سرخاب په کلي کښې چې د ګندمک نه شلور میله قطب ته پروت دے نظام خان نومے یو خان ته ځان وسپارلو. هغۀ بائي ګریو سره ډیر شریفانه سلوک وکړو او یو څو ورځې پس ئې محمد اکبر خان له چې په چارباغ کښې دیره وۀ راواستولو.

هر کله چې محمد اکبر خان ته دا معلومه شوه چې جنرل سیل او کپتان میګریګر په رضا صلاح جلال اباد پریښودو ته تیار نۀ دي نو هغۀ څۀ د اولس خلق رایوځاے کړل او د هغوي په ذریعه ئې د دې مقام محاصره شروع کړه. مګر د باقاعده امداد دپاره هغۀ کابل ته خطونه ولیکل. د دې نه قبل هغۀ د شاه شجاع د لاس یو حکم هم د میګریګر په نوم جلال اباد د خالي کولو دپاره راواستولومګر میګریګر د دې حکم څۀ پروا ونۀ کړه. دیخوا ته په کابل کښې څۀ وخت چې انګریزي فوځ د چاونۍ نه ووتو نو حسب معمول د پرو جنبو، د بې اتفاقو او د خانه جنګو چرچه شروع شوه. د ټولو نه وړومبے خو د نواب محمد زمان خان چې د سرداران کابل په اتفاق د جنګ ازادۍ شروع کیدو سره بادشاه منتخب شوے وۀ او د شاه شجاع تر منځه د کابل په بادشاهۍ باندې تنازعه شروع شوه. او تر ډیرې مودې پورې د هغوې په خپله کښې جنګونه وشول بالاخر امین الله خان چې د دې انقلاب یو لوے باني وۀ هغۀ او خان شیرین خان د قزلباشو مشر سره د نورو سدوزو سردارانو د شاه شجاع په ډله کښې ودریدل او نواب محمد زمان خان ئې په دې مجبور کړو چې هغه دې د بادشاهۍ دعوي پریږدي. او د شاه شجاع د وزارت عهده دې قبوله کړي.

اګرچې نواب محمد زمان خان دا خبره منظوره کړه مګر د ګزشته جنګونو او جګړو په وجه او له دې سببه چې نواب محمد زمان خان بارک زے وۀ او شاه شجاع سدوزے نو نۀ خو محمد زمان خان په شاه شجاع باندې اعتبار کولو او نۀ شاه شجاع په محمد زمان خان باندې. زمان خان دا خیال کولو چې کۀ چرې شاه شجاع له بالاحصار ته د احکامو د اخستو دپاره یا د مشورې دپاره ځم نو هسې نه چې ما هغه ګرفتار کړي او شاه شجاع سره دا ویره وه چې کۀ نواب زمان خان خپلو ملګرو سره بالاحصار کښې دننه پریږدم نو هسې نه چې بارکزي په بالاحصار قبضه وکړي او زما د حفاظت او د استوګنې اخري ځاے د هغوي لاس ته ورشي.

اخر په ډیرو کوششونو امین الله خان او خان شیرین خان په فریقینو کښې په قسمونو او په قرآنونو باندې په یو بل څۀ لږ ډیر اعتبار پیدا کړو اګرچې په ظاهره د څۀ وخت دپاره په دې دواړو کسانو کښې مفاهمت وشو او بادشاه خپل ځان په دې جنګ ازادۍ کښې د غازیانو ملګرے هم ښکاره کړو مګر یو خوا ټول بارکزي او بل طرف ته امین الله خان لوګري

شاه شجاع او نور سدوزي ډله وو او د هغوي په منځکښې باهمي دشمني، بغض او حسد هره ورځ زياتيدلو.

ورومبې هم د دې خبرې ذکر شوے دے چې پښتانۀ په جنګ کښې خو ډير بهادر او قربانـي ورکونکي خلق دے مګر د امن په وخت کښې هغوي د اتفاق او د ورورولی ژوندون تيـرولـو نـه بالکل نا اشنا دي. هرکله چې په دوئ يو مشترک دشمن حمله وکړي نو دوئ ښۀ پـه زړورتيا په بې غرضی او په اخلاص د خپلې ازادی د محفوظ ساتلو دپاره وينې توئ کړے دي. څۀ وخت چې د دوئ د نـاعـاقبت انديشو او د ظاهربينو سترګو نه دا خطره پناه شي نو دوئ پـه خپلو کښې انګتې بنګتې شي او د کورنی جنګونه راواخلي. تر دې چې هغه شکست خورده دشمن چې د دوئ د بې اتفاقو نه د فائدې وچتولو په انتظار کښې ناست وي بيا په دوئ بـانـدې راپـريـوځي او دوئ تباه او برباد کړي. تر دې زمانې پورې د پښتنو نه دا خوئ نۀ دے وتلے او لـه دې سببـه د هغوي هره يوه ابتدائي فتح د څۀ مودې نه پس په شکست باندې بدله شوې ده.

بـعينـه هم دغه حال د افغانستان د دې جنګ ازادی وۀ ديخوا په ظاهره خو انګريزي فـوځ چې په کابل کښې وۀ نۀ صرف شکست وخوړو بلکې هغوي خو نيلست و نابود شول بل خـوا خو چـې څـۀ وخـت د هـغـوي د نـظر نه دا فوځ غائب شو نو په خپله کښې ئ جنګونه او جـګـړې د کابل د تخت او بيا هرې ډلې د خپل خپل اقتدار او زور زياتولو دپاره بلې ډلې سره مشت و ګـريـبـانـي شـروع کـړه. نتيجه دا شوه چې هر کله جنرل سيل په جلال اباد کښې ښۀ مـضبـوط د دې مـوقـعـې په انتظار کښې ناست وۀ چې کله به بيا په کابل باندې انګريزي فوځ پيـش قـدمي کوي او محمد اکبر خان خط په خط سرداران کابل ته د کومک دپاره راستولو چـې جـنـرل سيـل د جـلال اباد نه وباسم نو په کابل کښې د بارکزو او د سدوزو ترمنځه خانه جنګي جاري وه. او د دې فرصت ئ نۀ بياموندو چې جلال اباد، غزني او قندهار به څرنګ بيا د پردي حکومت نه ازادوۀ.

اخـر کـار د ډير ليت و لعل او بحث مباحثو نه پس دا فيصله وشوه چې شاه شجاع دې پـه خپـلـه د جلال اباد د انګريزي فوځ مقابلې ته روان شي. مګر د شاه شجاع دا چرته رضا وه چـې د هـغـۀ او د فيـرنـګيانو ترمنځه دې جنګ وشي. اګرچې په زړۀ کښې د هغۀ اول اول دا خـواهـش وۀ چـې فيـرنـګيان دې د دې ملک نه وځي مګر په موجوده واقعاتو کښې هغۀ دا نۀ غـوښتل چـې د بـارکـزو اقتـدار دې دومره زيات شي چې هغه دې د افغانستان نه بيا شړونکے شي. پـس هـر څـومره چې قوم پرستې طبقې د هغۀ نه په جلال اباد باندې د پيش قدمی مطالبه کـوله هغه هومره هغۀ په يوه بهانه لا په بله بهانه دې خبرې له ټال ورکولو. او دا ئ اميد وۀ چې نن سبا بـه بيـا انـګـريزي فوځونه د هندوستان نه را ورسي. او په افغانستان کښې به د بارکزو

اقتدار تباه او برباد کړي. او ما به بیا په خپل ملک کښې مضبوط کړي. مګر په دې اثنا کښې د غازیانو دا طبقه د دهٔ په دې بهانو باندې بې صبره شوه هغوي میر جاجي نومے د کابل یو لوے ملا د ښار نه بهر سره د خپلو مریدانو خیمې ولګولے او اعلان ئې وکړو چې زهٔ به خپله په جلال اباد باندې د حملې کولو دپاره د جهاد په غرض وځم او ټولو پښتنو ته ئې د خپلې جنډې لاندې د راجمع کیدو دعوت ورکړو. شاه شجاع اوس مجبور شو چې د میر جاجي او د نورو سردارانو په خبره غوږ کیږدي.

پس پنځم اپریل 1842ء هغهٔ د خپلو روانیدو دپاره مقرر کړو او د امین الله خان لوګري زوے ئې د کابل ګورنر مقرر کړو. دیخوا شجاع الدوله چې د نواب محمد زمان خان زوے وهٔ او د شاه شجاع سخت مخالف او دشمن وهٔ د شاه شجاع د قتل سازش جوړ کړو.

په مقرره تاریخ یعني په پنځم اپریل 1842ء شاه شجاع د یو څو تنو هندوستاني سپاهیانو سره د خپل محل نه په چوپان کښې راووتلو. مګر څهٔ وخت چې دې په لاره روان وهٔ نو شجاع الدوله او د هغهٔ ملګري شاغاسي دلاور او نور محمد خان سره د شپیتو تنو مسلح سړو په لاره کښې هغهٔ ته ناست وو هرکله چې بادشاه دې ټولي له راورسیدو نو هغوي په بادشاه او د هغهٔ په محافظې دستې باندې ډزې شروع کړې.

شاه شجاع د خپل خلاصې دپاره د شجاع الدوله ډیر منت او زاري وکړه. او ورته ئې ووئیل چې "از برائے خدا چه گناه کرده؟" مګر شجاع الدوله د هغهٔ په چغو او فریادونو باندې هیڅ غوږ کښینښودو. او یو بارئې پرې وچلولو. شاه شجاع په دې ډزو سمدستي مړ شو او تر ډیر وخته پورې د هغهٔ نعش هم دغه شان په زمکه باندې پروت وهٔ.

دا خبره د سترګو په رپ کښې په ټول کابل کښې خوره شوه او ټولو سردارانو په اتفاق سره د نواب محمد زمان خان په دې فعل د ناراضګۍ اظهار وکړو . د شاه شجاع دا لار وه چې هغهٔ به خپل ټول قیمتي جواهرات لعلونه او فیروزې په یوه تیلۍ کښې په خپل جیب کښې په دې غرض ایښودلے وے چې کهٔ چرې ناساپه څهٔ مصیبت راباندې پیښ شي نو چې دا قیمتي څیزونه هر وخت زما په قبضه کښې وي او هسې نه چې هغه ټول هم دغه شان په محل کښې په صندوق کښې پاتې شي. څهٔ وخت چې وړومبے ډز په هغهٔ وشو نو هغهٔ دا تیلۍ په دې امید باندې یو پټې ته وغورځوله چې کهٔ چرې ژوندے پاتې شم نو بیا به ئې راواخلم. ولې شجاع الدوله او د هغهٔ ملګرو دا ونهٔ لیدل خو د غرونو یو ساده پښتون چې دا ټوله تماشه د لرې نه لیدله هغهٔ دا ولیدل چې شاه شجاع څهٔ تیلۍ غوندې په پټي کښې وغورځوله.

هرکله چې شاه شجاع قتل شو نو دا پښتون د شپې راغے او د لعلونو او جواهراتو دا ډکه تیلۍ ئې د پټي نه راوچته کړه. مګر څهٔ وخت چې هغهٔ پرانسته نو هغهٔ دا خیال وکړو چې په دې کښې خو رنګا رنګ کاڼي دي هغهٔ بیا د کابل یو هندو ته د تیلۍ دا کاڼي وښودل هغهٔ

ورته ووئیل چې دا خو معمولي کاڼي دي او د هغهٔ د سادګۍ نه ئ دا شان فائده وچته کړه چې په لس پونډه ئ ترینه د شاه شجاع ټول جواهرات واخستل. اتفاقاً يو دريم ګړے سړے هم د دې سودا په وخت کښې ولاړ وهٔ دې هندو هغهٔ له هم پنځهٔ پونډه ورکړل چې چا ته حال مهٔ وايه ولې د دې سړي په دې نور هم شک زيات شو او نيغ شجاع الدوله ته ورغے او دا ټول راز ئ ورته ښکاره کړو شجاع الدوله سمدستي هغه هندو راوبللو او ورته ئ ووئيل چې کهٔ چرې سرکاري مال فوراً نهٔ حواله کوے نو په توپه کښې به دې والوځوم. هندو فوراً ټول لعل و جواهرات شجاع الدوله ته حواله کړل او پنځلس پونډه چې کوم هغهٔ په دې سودا کښې لګولي وو هغه هم په دهٔ تاوان شو. د دې ټولو جواهراتو قيمت قريباً لس لکه پونډه وهٔ.

هر کله چې په کابل کښې دا جنګ و جدل روان وهٔ نو محمد اکبر خان او سلطان جان د جلال اباد د لاندې کولو دپاره سخت جدوجهد وکړو ولې جنرل سيل په دريو څلورو مياشتو کښې دا ځاے ډير مضبوط کړے وهٔ د ښار د فصيل نه ئ چارچاپيره توپې سورې کړې وے خوراک او نور سامان جنګ ئ په ډير مقدار کښې راجمع کړے وهٔ او د فوځ جوش او جنګي طاقت ښهٔ په خپل ځاے ولاړ وهٔ دې خوا محمد اکبر خان سره ماسواۓ د يو څو سوؤ خپل محافظ فوځ نه زياتي باقاعده فوځ نهٔ وهٔ البته د اولس خلق ورسره ډير وو ولې د يو محفوظ ځاے د اخستو دپاره چې په هغې کښې باقاعده فوځ او ښې ښې توپې پرتې وي دا قسم لښکر بالکل ناکافي وهٔ.

د مارچ د مياشتې نه د اپريل تر پنځم شپږم تاريخه پورې محمد اکبر خان د جنرل سيل فوځ سره ډيرې مقابلې وکړې ولې د دې ځاے په اخستو کښې هغهٔ هيڅ کاميابي ونهٔ کړه اګر چې د هغهٔ د خرڅ خوراک ټولې لارې ئ په هغهٔ باندې بندې کړې. هم په دې ورځو کښې د محمد اکبر خان يو خپل نوکر د هغهٔ د قتل اقدام وکړو او عام طور دا خبره مشهوره شوه چې دا خو شاه شجاع او لا کپتان ميګريګر او لا دوارو د دهٔ دې نوکر له د هغهٔ د قتل دپاره يو لک روپۍ په طور د انعام وعده کړې وه ولې محمد اکبر خان صرف په لاس باندې زخمي شو او څهٔ ډير خطرناک زخم ورته ونهٔ رسيدو. دا سړے محمد اکبر خان د دغابازۍ په جرم کښې سمدستي په دار کړو.

اخر په اووم اپريل جنرل سيل ناساپه د جلال اباد د ښار نه ووتو او په محمد اکبر خان باندې ئ د هغهٔ په ناخبرۍ کښې حمله وکړه يوه ښه مضبوطه جګړه په طرفينو کښې وشوه ولې محمد اکبر خان سره د دې منظم فوځ د مقابلې دپاره کافي طاقت موجود نهٔ وهٔ. له دې کبله د هغهٔ لښکر شکست وخوړو او د لغمان طرف ته راغلو. په دې جنګ کښې د فيرنګيانو د ډلې نه کرنيل ډيني چې يو نامتو افسر وهٔ قتل شو.

په کابل کښې د شاه شجاع د مرګ نه پس د هغهٔ زوے فتح جنګ د امين الله خان په

امداد سره بادشاه شو. مګر د بارکزو او د سدوزو په منځکښې اوس ښکاره په ښکاره جنګ شروع شو. بارکزو د شاه شجاع د مرګ نه پس نواب محمد زمان خان بیا بادشاه کړو اګرچې هغه پخپله د شاه شجاع په مرګ باندې دومره ناراض وۀ چې شجاع الدوله هغۀ د کوره وویستو. د فتح جنګ بادشاه کیدو سره امین الله خان میر جاجي چې د بارکزو په ډله کښې وۀ ګرفتار کړو. مګر عام خلق په دې کار باندې دومره ناراض شول چې سرداران کابل په اتفاق سره په هغۀ باندې حمله وکړه او هغۀ لره ئې شکست ورکړو او امین الله خان په بالاحصار کښې فتح جنګ سره پناه واخسته هم په دې ورځو کښې محمد اکبر خان د لغمان نه کابل ته راغے. او راتلو سره ئې ټول سرداران راجمع کړل او په یو زبردست تقریر کښې ئې ورته ووئیل چې د پښتنو د مذهب، عزت او غیرت د دشمن په موجودګۍ کښې مونږ له خپلې کورنۍ بې اتفاقۍ او خانه جنګۍ یو طرفته کول پکار دي او په یو اواز سره د مشترک دشمن مقابلې ته وتل لازمي دي. چنانچه هغۀ سمدستي امین الله خان سره د جوړې خبرې شروع کړې او ورته ئې خط ولیکلو چې تۀ زما پلار ئې او چونکې د خطرې په وخت کښې تا د قوم او د ملک دومره لوے خدمت کړے دے زۀ به ضرور تا غوندې سړي سره ملګرتیا کوم مګر فتح جنګ د دې سخت خلاف وۀ. چې امین الله خان دې محمد اکبر خان سره یو ځاے شي. اونۀ ئې دا غوښتل چې په سرداران کابل کښې دې صلح او اتفاق پیدا شي بلکې دا کوشش ئې کولو چې کوم انګریزي قیدیان چې دا وخت د محمد اکبر خان په لاس کښې دي هغه زما لاس ته راشي. او د دې غرض دپاره هغۀ لوے انعام مقرر کړو.

د دې نه علاوه هغۀ فیرنګیانو سره په جلال اباد کښې خط و کتابت شروع کړو چې تاسو مالـه نورې روپـۍ راکړئ او زر تر زره په کابل باندې بیا پیش قدمي وکړئ چنانچه په یوولسمه مئ فتح جنګ یو خط کپتان میګریګر ته د دې مضمون ولیکلو :

"The reason of the present contest is this. I wished to excite a dispute between the Barakzyes and the other wicked men, with a view that they should have no leisure even to touch their own heads and thus the English army may reach here unmolested. To effect this cause, whatever gold and silver I had, has been paid to the people, with the object of securing the interest of the British. Now I have very little cash remaining in the treasury enough only to support me for some ten or fifteen days more. After that period, without assistance from the British, I shall be reduced to the greatest difficulty. The men of the world are the disciples and worshippers of money. If you will not raise the victorious standard of the British troops quickly, or do not send me reinforements within a few days all the people will desert me, on account of not having money, and the Barakzyes will then have the upper-hand over me................. ."

ترجمه : "د موجوده کشمکش وجه دا وه چې ما د بارکزو او د نورو بدمعاشانو په منځکښې د

جګړې راوچتولو کوشش کولو د دې دپاره چې هغوي ته د سر ګرولو څۀ فرصت هم نۀ وي او په دې سبب انګريزي فوځ بې روکه ټوکه دې ځاے ته راورسي د دې مطلب حاصلولو دپاره څۀ سرۀ او سپين چې ما سره وۀ هغه مې ټول خلقو ته ورکړل چې د فيرنګيانو ښيګړه وشي اوس ماسره په خزانه کښې ډيره لږه نغدي پاتې شوې ده چې په مشکله به زما د نورو لسو يا پنځلسو ورځو ګزاره پرې وشي د دې نه پس به د فيرنګيانو د امداد نه بغير ماته ډير مشکلات پيښ شي. دنيادار خلق خو د روپو مريدان دي او د زرو پرستش کوي. کۀ چرې تاسو زر تر زره د انګريزي فوځ د فتح نشان راوچت نۀ کړو يا مو ماله په يو څو ورځو کښې کومک را وانۀ ستولو نو ټول خلق به زما نه تش په دې خبره وتښتي چې ما سره روپۍ نشته او بيا به بارکزي په ما برے بيامومي....."

د فتح جنګ د دې طريقه عمل په موجودګۍ کښې د محمد اکبر خان دپاره بله لار سوا د دې نه پاتې نۀ شوه چې هغه په بالاحصار باندې حمله وکړي ځکه چې دا وخت بغير د فتح جنګ نه بل داسې يو د اثر خاوند سړے هم په ټول افغانستان کښې نۀ وۀ چې د انګريزانو طرفدار وۀ. چنانچه د فتح جنګ او د محمد اکبر خان صرف هم په دې سبب ډير جنګونه په خپلو کښې وشول او اخر هر کله چې امين الله خان ته هم دا ثابته شوه چې فتح جنګ دا غواړي چې افغانستان کښې بيا فيرنګيان خپل اقتدار قائم کړي نو هغۀ د فتح جنګ ډله پريښودله او محمد اکبر خان سره شامل شو. د دې نه پس بيا بارکزو په اتفاق سره په بالاحصار باندې حملې وکړې او د ډيرو جنګونو نه پس ئې په اووم جون په بالاحصار باندې قبضه وکړه او فتح جنګ د محمد اکبر خان اطاعت منظور کړو.

اوس محمد اکبر خان دا غوښتل چې د ملک ټول فوځي او مالي اختيارات په خپل لاس کښې راجمع کړم. ځکه چې د يو څو مياشتو د تجربې نه هغۀ ته دا معلومه شوې وه چې نواب محمد زمان خان خو نۀ ملک کښې د امن په قائمولو کښې کامياب شو او نۀ هغۀ په خپل اثر و رسوخ سره په سردارانو کښې خانه جنګۍ بند کړې شوې. هغۀ ته دا ثابته شوه چې تر څو پورې يو داسې سړے بر سر اقتدار نۀ وي چې هغه د پښتنو خور ور طاقت د خپل فوځي او مالي طاقت په زور او د خپلې هردلعزيزۍ په سبب راټول نۀ کړي او په يک جهتۍ او يکسوئۍ سره د فيرنګيانو مقابلې ته ونۀ دريږي نو غالباً چې فيرنګيان به بيا خپل حکومت په افغانستان کښې قائم کړي. ځکه چې انګريزان هم د پښتنو د دې خانه جنګو او بې اتفاقۍ نه بې خبره نۀ وو. او د هغوي لوے لوے فوځونو څۀ خو د سر جارج پالک د کمان لاندې د پيښور د طرف نه او څۀ د جنرل ناټ د کمان لاندې د قندهار د طرف نه په کابل باندې بيا راروان وو. او له دې کبله د دې خبرې سخت ضرورت وۀ چې دا منتشر قوت دې د پښتون قام ټول رايو ځاے شي او د دې نوې خطرې دې په پوره طور سره مقابله وشي.

د دې ټول کار دپاره سرداران کابل محمد اکبر خان مقرر کړو. هغهٔ سمدستي يو لويه جرګه راغونډه کړه او ځومره برخلاف پرېږ چې وړے په هغوي کښې ئ روغه وکړه او بيا ئ لوړے لوړے او با اثره سرداران ځان سره په دې کار کښې شريک کړل. لکه سردار محمد عثمان خان، مير جاجي ملا وغيره.

مګر د پښتون قوم په يو مشترک غرض باندې راغونډول اسان کار نهٔ دے اوس نواب محمد زمان خان د محمد اکبر خان د دې عزت او مشرئ حاسد شو او هغهٔ ته ئ سازشونه جوړ کړل اخر يوه ورځ په دې دواړو کښې هم سخته مقابله او جنګ وشو مګر چونکې قوم د محمد اکبر خان په طرف وهٔ محمد زمان خان مغلوب شو او محمد اکبر خان د هغهٔ نه په يويشتم جون ټولې توپې او وسلې واخستې دا وخت برائ نام بادشاه هم فتح جنګ وهٔ. او محمد اکبر خان ځان د هغهٔ وزير کړو ځکه چې په دې هم د پښتنو د کور جوړيدلو څهٔ اميد کيدے شو. مګر باوجود د دې نه هم فتح جنګ د خپل خوئ او عادت نه باز رانغلو او هغهٔ خپل خط و کتابت فيرنګيانو او سر جارج پالک سره بدستور وساتلو او د محمد اکبر خان د ټول کار او نظام عمل اطلاعات به ئ هغوي ته ورکول . محمد اکبر خان اخر لاچار شو او فتح جنګ ئ ګرفتار کړو او ټول سرکاري مال جوهرات او روپۍ ئ ترينه قبضه کړې او د محل په يوه کمره کښې ئ بنديوان کړو مګر د هغه ځاے نه هم فتح جنګ وتښتيدو. او د قزلباشو په چم کښې ئ پناه واخسته او څهٔ ورځې پس د امين الله خان يو ورور هغه د سر جارج پالک کيمپ ته ورسولو.

لوستونکو ته به ياد وي چې د چاونۍ نه د انګريزي فوځ د وتو په وخت کښې سرداران کابل د فيرنګيانو نه کپتان جانسن وغيره په طور د يرغمال د کابل ښار ته بوتلي وو. دا افسران تر دې وخته پورې د نواب محمد زمان خان په تسلط کښې وو محمد زمان خان دې افسرانو سره دا شان نيک او د مهربانۍ سلوک په دې ټوله عرصه کښې کړے وهٔ لکه چې پلار خپلو زامنو سره کوي. او هغوي هم د هغهٔ په کور کښې دا شان په ارام او خوشحاله وو لکه چې سړے خپل کور کښې وسيږي. هر کله چې محمد اکبر خان د کابل ټول سياسي، فوځي او انتظامي امور په خپل لاس کښې واخستل نو دا هم لازمه شوه چې دا سياسي قيديان دې هم د هغهٔ په تسلط کښې راشي ځکه چې انګريزانو سره په راتلونکے مقابله کښې هم هغه سرې په کاميابۍ سره خبرې اترې کولے شوې چې چا سره به د هغوي د قوم قيديان وو.

وړومبے خو دا قيديان سرداران کابل د نواب زمان خان نه وغوښتل مګر هغهٔ انکار وکړو اخر د بيحده ډير زور اچولو نه پس محمد زمان خان دوئ سردارانو ته حواله کړل او تر ډيرې مودې پورې د مير حاجي په نګرانۍ کښې پاتې شول. د جولايۍ په مياشت کښې محمد اکبر خان مير حاجي ته ووې چې دا ټول قيديان بالاحصار ته ماله راولېږه مګر هغهٔ به

هـره ورځ په څۀ نا څۀ بهانه د هغوي په حواله کولو کښې ډيل او تاخير کولو. محمد اکبر خان تـه مـعـلـومـه وه چې د مير حاجي روپۍ ډيرې خوښې دي او چونکې هغه د محمد اکبر خان د ډلې سړے وۀ نـو مـحـمـد اکبر خان هغۀ له په خوشحالۍ څلور زره روپۍ ورکړې او دا ټول فيـرنـګيان قيديان ئ بالاحصار ته راوستل. چونکې کپتان جانس خپله قصه د دې واقعې متعلق پـخپله په دلچسپۍ سره کړې ده او د محمد زمان خان د مهربانۍ ذکر ئ کړے دے نو موږ د هغۀ الفاظ لاندې درج کوؤ:

"Two days after the death of Shah Shuja, the people of Kabul demanded that our hostages, who had been left under charge of Mohd Zaman Khan, should be given up to the care of the son of the late High----priest, Mir Haji. The former noble-hearted gentleman, than whom no father could have behaved more tenderly to his children, begged and entreated with tears that the seperation should not take place---adding that he was willing to give up his own family to the popular will, but not the English gentlemen who had been entrusted to his care, and who were his honoured guests; that he would, if the people so willed it, make over to them his own son, with his sword round his neck, and his turban for a winding sheet, to be dealt with according to their pleasure; but that force alone should deprive him of the society of his friend. When all entreaties failed, he hoped to work upon the feelings of the party at the conference by telling them that their chief and his own sister and relations were in the hands of the British Government, and that vengeance would assuredly be dealt upon them if the English gentlemen sustained the slightest injury. On this, a grey bearded old gentleman told him and the rest that they might make their minds perfectly easy as regards the Afghan prisoners in India, as it was contrary to the uses of Englishmen to hurt a hair of the heads of their captives. The clomour of the people prevailed over all that the Nawab could urge, and with many a bitter feeling did this amiable man make over the hostages to Mir Haji, with prayers and entreaties to the latter that he would behave kindly to them;and at the same time he sent with them to the latter's house all the females of his family, as the surest means of their protection, for however excited a mussalman population may be, it is seldom or ever that they violate a harem."

تـرجـمـه : "د شـاه شـجـاع د مـرګ نه دوه ورځې پس د کابل خلقو مطالبه وکړه چې زمونږ يـرغمال چې تر دې وخته د محمد زمان خان د نګرانۍ د لاندې اوس دې د لوړے ملا زوي مير حـاجـي تـه حواله کړي. محمد زمان خان چې يو ډير نرم دل او شريف انسان وۀ او د هغۀ نه به زيـاتـې يـو پـلار هـم خپلو زامنو سره دا شان د رحم سلوک نۀ وۀ کړے . د اوښکو نه په ډکو سـتـرګـو هغوي ته سوال او منت وکړو چې دا سړي زما نه مۀ جدا کوئ او ورته ئ ووئيل چې زۀ دې تـه تيـار يـم چې د خپل کور خلق تاسو ته حواله کړم نه چې دا انګريزان. ځکه چې دوئ زمـا پـه حـواله شوي دي او زما معزز ميلمانۀ دي او کۀ چرې د خلقو دا منشا وي نو زۀ به خپل

زوړے توره په غاړه سره د پټکي په طور د کفن تاسو ته حواله کړم او چې څرنګ ستاسو خوښه وي هغه شان سلوک ورسره وکړئ مګر کۀ چرې زما دې دوستانو نه ما محرومولئ نو تش په زور به ئ رانه بیایئ . هر کله چې د هغۀ منتونه ټول بیکاره لاړل نو بیا هغۀ په جرګه کښې د دې ډلې په احساسات باندې د اثر اچولو دپاره دا ووئیل چې زمونږ سردار او زما خپله خور او خپلوان د حکومت برطانیه په لاس کښې دي نو کۀ چرې دې فیرنګیانو ته یوه ذره نقصان ورسیدو نو هغوي به یقیناً د هغوي نه بدل اخلي.

په دې باندې یو زوړ سپین ږیری سړي هغۀ ته او د جرګې نورو کسانو ته ووې چې تر کومه پورې د پښتنو قیدیان چې په هندوستان کښې دي نو د هغوي په حقله تاسو بالکل بې فکره شئ ځکه چې د فیرنګیانو دا رواج دے چې هغوي د خپلو قیدیانو د سر د یو ویښتۀ ته هم نقصان نۀ رسوي. د خلقو مطالبه د نواب په ټولو دلائلو باندې غالبه راغله. او په ډیر افسوس سره دې شریف انسان دا یرغمال میر حاجي ته حواله کړل او هغۀ ته ئ منتونه او سوالونه وکړل چې دوئ سره د مهربانۍ سلوک کوه او بیا هغوي سره سم هغه د میر حاجي کور ته د خپل کور ښځې هم ولیږلے چې دا د هغوي د بچاؤ پخه ذریعه وه. ځکه چې کۀ چرې د مسلمانانو یو ګروه ډیر په جوش کښې هم وي نو هغوي د چا د کور پرده نۀ ماتوي."

سر جان کے هم د دې قیدیانو په باره کښې په خپل تاریخ کښې دا شان لیکلي دي :

" In the meanwhile the English hostages remained under the protection of Mohd Zaman Khan. Nothing could exceed the kindness of the good old man. Faithful among the faithless, he was resolute to defend the christian strangers at all risks; and never when the popular clamour ran highest, and other men of note were thristing for the blood of the captives, did he waver for an instant in his determination to shield the helpless feringhies from the malice of his remorseless countrymen. He was a Barakzye chief- a near relative of Dost Mohd Khan , and there was not among the Sardars of all the tribes one in whom the spirit of nationality glowed more strongly and more purely. But whilst the independence of his country was as dear to him as to any of his brothern, he did not burn with that fierce hatred against the English which broke out in other places, nor did he ever, in the advancement of the most cherished objects of his heart, stain his patriotism with those foul crimes from which elsewhere there was little shrinking. Regarding with abhorence the conduct of those who had betrayed our unhappy people, he himself did all that, single handed, he could do, to atone for the cruelty of his countrymen; and no father could have treated his children more kindly than the good Nawab cherished and protected the English hostages who found a sanctuary in his house."

ترجمه : "په دې اثنا کښې انګریزي یرغمالان د محمد زمان خان په حفاظت کښې پاتې وو کومه مهرباني چې دې نیک بوډا سړې هغوي سره کړې وه د هغې څۀ حد نۀ وۀ. په بې وفا

خلقو کښې یو دې د وفا سړے وۀ چې مصممه اراده ئې کړې وه چې په هر حال کښې به زۀ دا عیسایان د ناپیژندګلو خلقو بچ کوم او د خپلو بې کړکو ملکیانو د دشمنۍ د لاس نه د دې بیکسه فیرنګیانو د ساتلو په اراده کښې د هغۀ چرې تزلزل پیدا نۀ شو. حالانکې هغه وخت د عامو خلقو مطالبه ډیره سخته وه. او ډیر لوړے لوړے خلق د دې قیدیانو وینو ته تږي ناست وو. هغه پخپله بارکزے سردار وۀ. او دوست محمد خان نزدې خپل وۀ او د ټولو قبائلو په سردارانو کښې د هغۀ په نسبت د قومیت په جذبه کښې بل څوک زیاتي مخلص او مضبوط نۀ وۀ مګر سره د دې چې هغۀ ته د خپل ملک ازادي هم دومره خوږه وه لکه چې د هغۀ نورو عزیزانو ته وه. خو د هغۀ په زړۀ کښې د فیرنګیانو برخلاف دومره د نفرت سختې لمبې نۀ بلیدے لکه چې څرنګ په نورو ځایونو کښې وے او نۀ چرې هغۀ دا شان وکړل چې هغۀ د خپل زړۀ د محبوب مراد حاصلولو دپاره د خپلې حب الوطنی په لمن باندې د هغې قبیحو جرائمو داغ لګولے وے د کومو چې نور خلق په نورو ځایونو کښې مرتکب شوي وو. هغۀ د هغه ټولو خلقو عمل ته چې چا زمونږ د بدقسمته ملکیانو سره بیوفائي کړې وه د نفرت په نظر سره کتل. او هغۀ یواځې په یو ځان څومره چې د هغۀ وس رسیدو هغه ټول څۀ وکړل چې د خپلو ملکیانو د ظلمونو تلافي وکړي او یو پلار به هم خپلو بچو سره د دې نه زیاتي د مهربانۍ سلوک نۀ وۀ کړے څومره چې دې نیک نواب انګریزي یرغمالانو سره کړے وۀ او څرنګ چې هغۀ د هغوي حفاظت کړے وۀ حقیقت خو دا وۀ چې د هغۀ کور د هغوي دپاره د ستانې ځاے وۀ."

اوس مونږ بیا د هغې قیدیانو قصه راخلو کوم چې محمد اکبر خان د انګریزي فوځ نه په طور د یرغمال ځان سره په لاره راوستي وو. د اوولسمې جنورۍ نه تر یولسم اپریل پورې دا ټول انګریزي قیدیان په بدیع اباد کښې د محمد شاه خان په قلا کښې دیره وو. په یوولسم اپریل دا ټولے د علي شنګ درې طرف ته روان کړې شول. په علي شنګ کښې د یوې شپې کولو نه پس دوئ واپس کابل ته روان کړې شول او محمد اکبر خان پخپله د دې قیدیانو د حفاظت دپاره د هغوي په ملګرتیا کښې روان شو. په نولسم اپریل دا ټول ټولے بیا تزین ته واپس راورسیدو. د تزین په لاره کښې د لیډي سیل او د لیډي میکناټن په کجاوو کښې زړنه وچینجیدل او په قے کولو باندې سر شوې. د محمد اکبر خان د لاس زخم لا جوړ شوے نۀ وۀ او هغه لا هم هغه شان کمزورے وۀ له دې کبله هغه په ډولۍ کښې دې ټولې سره روان وو او لاس ئې په غاړه کښې اچولے وۀ. هر کله چې هغه د دې ښځو د تکلیف نه خبر شو نو په خپله د ډولۍ نه کوز شو او لیډي سیل او لیډي میکناټن ئې په هغې کښې سورې کړې او هغه پخپله عین تر کابله پورې په اس باندې لاړلو. (سر جان کے.. دریم جلد.. مخ 232.)

په شلم اپریل د مسز والر لور د تزین په قلا کښې وشوه د دې نه وړومبے په بدیع اباد

کبنې د مسز بوائیډ او د مسز ریلي او د مسز برن چې د یو سپاهي ښځه وه اولاد شوے وۀ د دې غرض دپاره چې په دې زنانوؤ څوک د شرارت په وجه ډزې ونۀ کړي د محمد شاه خان او د نورو سردارانو خپلې زنانه دې ښځو سره په لاره ملګرې وې. په یویشتم اپریل دې پښتنو ښځو مسز ایري له ډوډۍ وکړه او په ډیرې خوش خلقۍ او خنده رویۍ هغې سره پیش راغلې. د خبرو اترو په دوران کبنې دې پښتنو بیبیانو د مسز ایري نه تپوس وکړو چې " کمپنې صاحب نر دے او که ښځه؟ " مګر څۀ وخت چې هغوي ته دا ووئیلے شو چې د انګلستان په تخت باندې دا وخت یوه ښځه ناسته ده نو هغوي د حیرانتیا اظهار وکړو. دې ښځو د کپتان میګریګر برخلاف ډیرې خوفناکې قصې مسز ایري ته بیان کړې.

په دویشتم اپریل سحر وختي محمد اکبر خان دا ټول ټولے یوې بلې قلا ته چې دوه میله لرې وه بوتلل هم په دغه قلا کبنې اووۀ بجې ماښام جنرل ایلفنسټن د خپلې بیمارۍ او د زوړ عمر او د سختې ستومانۍ په سبب مړ شو. محمد اکبر خان د هغۀ نعش د ښخولو په غرض جلال اباد ته د هغۀ د قام خلقو له واستولو. په پنځویشتم تاریخ ئې هغه په اوښ باندې بار کړو او د غلجو د یوې محافظې دستې د لاندې ئې روان کړو. د دې نعش د روانولو نه لږ وړومبے د لدهیانې یو قاصد د محمد اکبر خان په نوم باندې یوه چیټۍ راوړه چې په هغې کبنې ئې لیکلي وو " چې ستا د کور خلق فیرنګیانو د یوې هفتې نه اوږي تږي ساتلي دي."

کوم انګریزي قیدیانو چې دا خبره واؤریده نو هغوي فوراً د دې خبرې د تصدیق نه انکار وکړو. ولې محمد اکبر خان ووئیل چې کۀ چرې دا خبره دروغ وي او کۀ رښتیا وي مګر زما د ټول خاندان تباهي به هم ما د خپلې ارادې نه وا نۀړوي.

په شپږویشتم تاریخ خبر راغے چې د جګدلک په خوا کبنې د جنرل ایلفنسټن په لاش باندې د کوچي غلجو یو ټولي حمله وکړه څکه چې هغوي ته دا معلومه شوې وه چې دې ټولي سره یو ګوره سپاهي هم ملګرے دے. دا رښتیا وه چې دې نعش سره د محمد اکبر خان په حکم یو ګوره سپاهي هم ملګرے وۀ دې بې علمه غلجو د شپې په لس بجې په دې ټولي باندې حمله وکړه او دا سپاهي ئې زخمي کړو. مګر د یو خان په امداد دا سپاهي په ډیر تکلیف د دې حمله آورو نه خلاص کړې شو. او هغې خان هغه خپلې خیمې ته بوتلو کوچیانو بیا د جنرل ایلفنسټن تابوت مات کړو. او د هغۀ نعش ئې بهر وغورځولو او قریب وه چې هغه ئې سیزلے وے مګر د دې نعش محافظې دستې هغوي ته ووئیل چې محمد اکبر خان به ضرور د دې بدل له تاسو نه اخلي. لفټیننټ ایري په خپل کتاب کبنې لیکي :

" Mohd Akbar's annoyance was great on receiving these awkward tidings, but he lost no time in despatching as large a party as he could spare, to rescue the European and repack the body."

ترجمه : "د دې بد خبر په اوریدو سره محمد اکبر خان ډیر ناراض شو مګر سمدستي ئې یوه

دومره لویه دسته د سړو ولیږله څومره چې هغهٔ فالتو کولے شوه د دې دپاره چې هغه ګوره راخلاص کړي او نعش بیا بار کړي."

په اوویشتم اپریل هغه ګوره سپاهي واپس راورسیدو او دا خبر هم راغے چې د جنرل ایلفنستن نعش بیا جلال اباد ته روان کړې شو. په اول مئ محمد اکبر خان دې قیدیانو له هغه انګریزي اخبارات او چیټئ چې د جلال اباد نه راستولے شوے وے ورکړې چونکې د اتو میاشتو نه دې قیدیانو ته د خپل کور نه یوه چیټئ هم نهٔ وه رارسیدلے په دې وجه د هغوي په دې خطونو ډیره تسلي وشوه.

په دې اثنا کښې محمد اکبر خان کپتان میکنزي جلال اباد ته جنرل پالک سره د صلح د خبرو اترو دپاره استولے وهٔ مګر په دویم مئ هغه واپس شو او هیڅ تسلي بخش جواب ئې رانهٔ وړو. مګر په څلورم مئ هغهٔ بیا میکنزي جلال اباد ته د دې فیرنګیانو د رهایئ متعلق د خبرو اترو دپاره ولیږلو.

په لسم مئ د کپتان او مسز اینډرسن هغه لور د کابل نه راورسیده کومه چې د خورد کابل په دره کښې په اتمه جنورئ د کپتان او مسز بوائیډ وړوکي زوي سره ورکه شوې وه. دا جینئ په دې ټوله عرصه کښې په ډیر حفاظت سره د نواب زمان خان په کور کښې د هغهٔ زنانوؤ سره وسیدله. او هغهٔ بیا کپتان ټروپ ته حواله کړه او هغهٔ بیا خپل مور پلار له راواستوله.

په څلورم د مئ کپتان ټروپ او میجر پوټنګر کابل ته محمد اکبر خان سره لاړل او په هغه ځاے کښې د نواب جبار خان په ځاے کښې دیره شول. د محمد اکبر خان د کابل نه د روانګئ نه پس انګریزي قیدیان د محمد رفیق نومے یو سړي مهمان دارئ ته وسپارلے شول لفټیننټ ایري د دې سړي د خوش اخلاقئ هم په خپل کتاب کښې تعریف کوي:

" From his ( Mohd Rafique's) pleasing manner, and constant civility and kindness he soon became a general favourite."

ترجمه : "د محمد رفیق د خوش اخلاقئ او مسلسل نرم ژبانئ او مهربانئ په سبب هغهٔ په ټولو کښې عامه هردلعزیزي حاصله کړه."

په شپاړسم مئ کپتان میکنزي د جلال اباد نه واپس راغلو او دا خبر ئې راوړو چې د جنرل ایلفنستن نعش صحیح او سلامت جلال اباد ته ورسیدو مګر جنرل پالک د محمد اکبر خان د صلحې شرطونه مسترد کړل چنانچه په اوولسم مئ هغه کابل ته محمد اکبر خان له د دې خبر د رسولو دپاره روان شو چونکې جنرل پالک او نور فیرنګیان محمد اکبر خان سره جوړې کولو ته تیار نهٔ وو له دې کبله د انګریزي قیدیانو دا ټولے د تزین نه کابل طرف ته روان کړې شو.

په دروېشتم مئ نهٔ بجې سحر ښځې په کجاوو کښې او سړي په اسونو او څهٔ پیاده

روان شو. په ټوله لار باندې د انګریزي فوځ د مړو نه داسې سخا ډېروزې ختلي چې په لاره باندې تلل ډېر مشکل وو. د دویشت میلو مزل کولو نه پس دوئ د خورد کابل قلا ته راورسیدل. او په شلیریشتم مئ نهۀ بجې سحر بیا دوئ مخ په کابل روان شول. چونکې په سمه لار باندې د مړو د بدبویی په وجه تلل ناممکن وو له دې کبله دا ټولے په یوه بله لنډه لار باندې روان شو. او قریباً د شلو میلو د مزل نه پس د علي محمد قزلباش په قلا کښې چې د کابل نه درې میله دیخوا پرته ده د شپې دپاره پاتې شول. د علي محمد د کور زنانه د وړومبے نه یوې بلې قلا ته استولے شوے وے او دا قلا چې ډېره ارام ده او لویه وه د انګریزي زنانوۇ دپاره خالي کړې شوې وه. دا ټول قیدیان د شلیریشتمې مئ نه تر پنځویشتم اګست پورې په دې قلا کښې دیره وو. په دې اثنا کښې د جنرل پالک او جنرل ناټ فوځونو چې څۀ کارروائي په افغانستان کښې وکړه د هغې تفصیل به په یو بل نوي باب کښې کوۇ. صرف یو قابل ذکر واقعه په دې دومره موده کښې دا وشوه چې په درویشتم اګست د غزني انګریزي قیدیان دې ټولي سره یو ځاے شول او په بدیع اباد کښې هم چې څۀ ګوره سپاهیان چې د انګریزي سپاهیانو نه جدا قیدیان وو په شپږ ویشتم د جون دې ټولي سره شامل شول.

لکه چې څرنګ دکابل او د هغې نه د چارچاپیره علاقې خلقو د انګریزانو برخلاف جنګ ازادي شروع کړې وۀ او د کابل په انګریزي چاونی باندې ئ حمله کړې وه هم دغه شان او هم په دې ورځو کښې په غزني او په قندهار کښې هم د قام خلق د فیرنګیانو برخلاف راپاخیدلي وو. چونکې د قندهار د انقلاب قصه وړده ده مونږ به هغه په یو جدا باب کښې بیان کړو ولې د غزني قصه مختصره ده. له دې کبله هغه مونږ په دې ځاے کښې لیکو.

په غزني کښې انګریزي فوځ دکرنل پامر د کمان لاندې وۀ. غازیانو په دې فوځ باندې حمله وکړه او دا فوځ په ښار کښې دننه ننوتو او په ښار کښې دننه بند شو. په شلم نومبر 1841ء غازیانو په غزني ښار باندې باقاعده حمله شروع کړه مګر هغوي خبر شو چې لفټیننټ کرنل میکلارن سره د یو بریګیډ فوځ د قندهار نه د غزني په طرف باندې راروان دے نو هغوي خوارۀ وارۀ شو. هرکله چې میکلارن د واوړو په سبب قندهار ته بیا واپس شو نو غازیان دوباره په اووم دسمبر د غزني نه چارچاپیره پریوتل. او انګریزي فوځ ئ په ښار کښې دننه بند کړو. تر شپاړسم دسمبر پورې غازیانو د بهر نه په ښار کښې دننه په انګریزي فوځ ډېرې حملې وکړې. مګر څۀ خاص کامیابي ئ حاصله کړې نۀ وه. اخر هغوي په دې ورځ په ښار کښې دننه په راننوتو کښې کامیاب شول او د شپې ئ په انګریزي فوځ حمله وکړه. انګریزي فوځ د ښار په پریښودو مجبور شو او په قلا کښې وردننه شول. په غزني کښې هم هندوستاني سپاهیانو ته ډېر نقصان د واورې او د یخ په وجه رسیدلے وۀ او د ډیوټی د ډرکولو هم قابل پاتې شوي نۀ وو. تر پنځلسمې جنورۍ غازیانو په قلا باندې اکه دوکه ډزې کولے او

درې څلور سرې به ئ د انګريزي فوځ نه وژل. مګر په دغه ورځ باندې د غازيانو او د انګريزي فوځ په منځکښې په دې شرط صلح وشوه چې هر کله شمس الدين خان د کابل نه غزني ته راورسيږي نو انګريزان به غزنے پريږدي.

دا شمس الدين خان سرداران کابل د غزني په طرف د دې دپاره راستولے وۀ چې هغه د ميکناټن په شان د غزني فيرنګيانو سره د غزني د خالي کولو په حقله خبرې اترې وکړي. شمس الدين خان په پنځلسمه فرورۍ راورسيدو مګر د کابل او د جلال اباد د فيرنګيانو په شان د غزني فيرنګيانو هم د امداد په طمع کښې په خپل لوظ باندې ټينګ پاتې کيدل نۀ غوښتل او د مارچ تر ابتدا پورې هغوي هغۀ سره هسې ټال مټول وکړو مګر اخر هغه د دې فيرنګيانو په فريب باندې پوهه شو. او ورته ئ صفا وينا وکړه چې کۀ سمدستي ښار نۀ خالي کوئ نو مونږ بيا درسره جګړه نښلوؤ. پس انګريزي فوځ په شپږم مارچ د قلا نه راووتلو مګر څرنګ چې په کابل کښې وو هم دغه شان په غزني کښې د غازيانو بې قاعدې خلقو بالکل په ناجائزه طريقه د شمس الدين خان او د نورو مشرانو د منشا او رضا نه بالکل خلاف په اووم مارچ په دې فوځ ناساپه راپريوتل. انګريزي فوځ د لفټيننټ کرافورډ او برينټ چې د 54 نمبر پلټنې افسران وو او د لفټيننټ نکلسن د 27 نمبر پلټنې د کمان د لاندې ښه مقابله وکړه او ټوله ورځ جنګ وشو. په دې جګړه کښې ډير انګريز فوځ ضائع شو مګر اخر دا افسران په کاميابۍ سره هغه ځاے ته واپس شول کوم ځاے چې کرنل پامر وسيدلو او هلته ئ پناه واخسته. شمس الدين خان د غازيانو په دې کار سخت خفه شو او په ډير کوشش ئ هغوي د دويمې ورځې د جنګ نه منع کړل.

د څلورو پنځو مياشتو د مسلسل تکليفونو او مصيبتونو نه پس هندوستاني سپاهيانو دا محسوسه کړه چې د هغوي دپاره په غزني کښې نور پاتې کيدل ناممکن دي نو هغوي په خپل مخ سر باندې پيښور طرف ته د تللو قصد وکړو. په لسم مارچ هغوي د دې ارادې اطلاع خپلو افسرانو ته ورکړه. او په بله شپه د ماښام نه پس راروان شول دا سپاهيان لا ډير بهر تۀ نۀ وو وتلي چې واؤره پرې ووريده. او د يخني د لاسه بالکل تک تور شول. هر کله چې په هغوي باندې سحر شو نو بيا غازيانو هغوي راګير کړل او بيل بيل سرے ئ قتل کړو د دې نه پس شمس الدين خان فيرنګيانو ته ووئيل چې په بې قاعدې غازيانو باندې زما هيڅ وس نۀ رسي نو کۀ چرې تاسو خپله وسله مونږ ته حواله کړئ نو مونږ به هر يو افسر په ډير قدر او عزت کابل ته صحيح سلامت وليږو. چنانچه د شپې په لس بجې دې ټولو افسرانو خپلې خپلې وسلې شمس الدين خان ته حواله کړې او په قلا کښې ئ پناه واخسته. د اګست د مياشتې پورې دا افسران هم دغه شان د غزني په قلا کښې بند وو مګر په دې ټوله عرصه کښې شمس الدين خان او د هغۀ ماتحتانو د دوئ سره د انتهائي درجې د شرافت او د مهربانۍ

سلوک کړے وۀ. په نولسم اګست د کابل نه حکم راغے چې دا ټول افسران دې کابل ته راواستولے شي چنانچه په درویشتم اګست دا ټولے هم کابل ته ورسیدو او خپلو نورو قیدیانو ملګرو سره یو ځاے شول.

مونږ لوستونکو ته د کابل د انګریزي قیدیانو ذکر خو په تفصیل سره کړے دے مګر لا تراوسه پورې مو د موهن لعل حال نۀ دے بیان کړے. موهن لعل په دویم نومبر د غازیانو لاس لـه ورغے. مګر هغه نواب محمد زمان خان د هغوي نه خلاص کړو او په خپل کور کښې ئ پټ کړو د هغۀ د کور نه هغه بیا د خان شیرین خان کور ته لاړو او د جون د میاشتې تر اخره پورې هغه د هغۀ په ځاے کښې وۀ اګرچې سلطان محمد خان د شیرین خان زوم به هغۀ سره د هغۀ د نګرانۍ او د حفاظت دپاره په یوه کمره کښې اودۀ کیدلو مګر په دې عرصه کښې موهن لعل پټ خط و کتابت سر جارج پالک سره په ناجائزه طریقه ساتلے وۀ او د کابل ټول احوال بـه ئ هغۀ ته د خپلو مخبرانو په ذریعه رسولو. موهن لعل سره سرکاري روپۍ او ذاتي مال هم ډیر وۀ مګر دا مال د هغۀ نه هیچا هم وانۀ خستو بلکې د دې روپو په ذریعه هغۀ دا کوشش وکړو چې په سردارانو کښې بې اتفاقي واچوي او هغوي د انګریزانو په طرف کړي هر کله چې میکناټن لا ژوندے وۀ نو د هغۀ او د موهن لعل هم باقاعده خط و کتابت وۀ بلکې هر څومره لین دین چې غلجو او قزلباشو سره شوے وۀ هغه هم د دۀ په ذریعه شوے وۀ.

په دویشتم جون محمد اکبر خان شیرین خان ته د موهن لعل د حواله کولو دپاره ولیکل ځکه چې هغه د موهن لعل د دې خط و کتابت او سازشونو نه بې خبره نۀ وۀ. مګر چونکې په سرداران کابل کښې باهمي جګړې رواني وے نو د محمد اکبر خان دومره طاقت نـۀ وۀ چې هغه ئ په زور راوستے وے. هر کله چې محمد اکبر خان په بالاحصار باندې قبضه وکړه نو هغۀ دا مناسب وګڼل چې د موهن لعل دا شرارت هم بند کړم. چنانچه خان شیرین خان موهن لعل هغۀ ته حواله کړو. محمد اکبر خان وړومبے خو هغه میجر پوټنګر او کپتان میکنزي سره یو ځاے وسولو مګر بیا ئ هغه د ملا جلال اچکزي په نګرانۍ کښې ورکړو. دې سرې د موهن لعل سخته خبرداري لرله. تر دې چې د هغۀ دپاره اوس سر جارج پالک سره خط و کتابت کول هم ناممکن شو. په دې باندې سرجارج پالک او نورو فیرنګیانو چې د هغۀ په ذریعه به ئ د کابل ټول سیاسي او فوځي حالات معلومول سخت خفه شول. او ګورنر جنرل ته ئ دا جوړه کړه چې موهن لعل سره سخته بدسوکي کیږي حالانکې د هر قوم د قانون مطابق د موهن لعل د جرم سزا مرګ وۀ ځکه چې هغۀ د سرداران کابل او د هغوي د سیاسي او فوځي معاملاتو مخبري د هغوي دشمنانو ته کوله. د سر جارج پالک د دې خط په جواب کښې کومه چیټي چې ګورنر جنرل لارډ ایلنبرو هغۀ ته ولیکله هغه قابل د کتو ده:

" I am directed by the Governor General (Lord Ellenborough) to acknowledge the receipt of your letter of the 3rd instant, and to communicate to you

his Lordship's entire approval of the measures adopted of extending to Mohan Lal the protection of the British Government.

It is his Lordship's intention to remove Mohd Akbar Khan's family from Ludhiana; and it is under his Lordship's consideration whether Mohd Akbar Khan's wife and children should not be immediately sent to Calcutta, and eventually to En-land.

Mohd Akbar Khan must be aware that Government in England cannot afford to any one's education in the Mohammadan faith, and there are no means of obtaining it there."

ترجمه :" ماته گورنر جنرل (لارډ ایلنبرو) هدایت کړے دے چې ستا د دریم ماه حال خط رارسیدل تسلیم کړم او تاته اطلاع درکړم چې لارډ صاحب ستا د کارروایی چې تا موهن لعل د حکومت برطانیه په حفاظت کښې اخستے دے پوره پوره منظوروي.

د لارډ دا اراده ده چې د محمد اکبر خان د کور خلق د لدهیانې نه لرې کړي او دا خبره هم د لارډ صاحب زیر غور ده چې د محمد اکبر خان ښځه او بچي کلکتې ته او بیا د هغه ځایے نه انګلستان ته واستوي.

محمد اکبر خان ته به ضرور دا معلومه وي چې حکومت برطانیه هیچا له هم د اسلام د دین تعلیم نهٔ شي ورکولے او نهٔ په هغه ملک کښې د دې تعلیم د حاصلولو څهٔ وسائل موجود دي."

گورنر جنرل د دې خط لیکلو مدعا دا وه چې محمد اکبر خان ته دا ویره وښیي چې کهٔ چرې موهن لعل سره هغهٔ خپله رویه بدله نهٔ کړه نو زهٔ به ستا بال بچ ولایت ته جلاوطن کړم او په هغه ځایے کښې به هغوي د اسلام په پریښودو مجبور شي.

په کومو وجوهاتو چې محمد اکبر خان موهن لعل گرفتار کړے وهٔ او د هغهٔ نگراني ئې سخته کړې وه هغه د سر جارج پالک د لاندیني خط نه چې کوم هغهٔ گورنر جنرل ته لیکلے وهٔ معلومیدے شي :

" Mohan Lal by Mohd Akbar Khan, I venture to take this opportunity of bringing to the notice of the Rt. Hon, the Governor-General the zeal and perseverance of Mohan Lal, who under very difficult circumstances, and at very great personal risk, has continued to send me regular and correct information of the state of different parties at Kabul."

ترجمه : "زهٔ په افسوس سره د دې خبرې رپورټ کوم چې محمد اکبر خان موهن لعل گرفتار کړے دے. زهٔ په دې موقع د رائټ آنریبل گورنر جنرل نوټس ته د موهن لعل د کار کولو شوق او د هغهٔ استقلال د راوستلو جرأت کوم. هغه باوجود د سخت مشکل واقعاتو نه او د خپل سر په خطره کښې ماته په ښهٔ نا ښهٔ طریقه د کابل د مختلفو ډلو صحیح او باقاعده اطلاعات راستولي دي."

د یو بل خط نه چې سر رچمنډ شیکسپیر (چې د سر جارج پالک سیکرټري وُ) خپل حکومت ته لیکلے وُ هم صفا ظاهریږي چې د پښتنو په نظر کښې موهن لعل په خپل ایام قید کښې د هغوي د نیک سلوکی او د ښهٔ برتاؤ نه ډیره ناجائزه فائده اخستې وه او له دې کبله د هغهٔ سخته نگراني ازحد ډیره ضروري وه. د ټولو انګریزي قیدیانو خو د ورومبے نه د دې نگرانۍ کیدله چې هغوي د جلال اباد فیرنګیانو ته د کابل د واقعاتو متعلق هیڅ حالات ونهٔ لیکي مګر چونکې موهن لعل هندوستانے وُ په دې لحاظ هغوي د دهٔ نه بې خطرې وو ځکه قومي لحاظ سره په دې ټول انقلاب کښې د هغهٔ خپل څهٔ ګټه تاوان نهٔ وُ. بلکې هغه د فیرنګیانو یو تنخواه خور ملازم وُ او په هغهٔ دا هیڅ لازم نهٔ وو چې هغه د خپلو مالکانو د خوشحالولو دپاره ناجائزې طریقې استعمال کړے وے. د کوم جرم چې موهن لعل په دې طریقه مرتکب شوے وُ کهٔ چرې دا جرم هغهٔ د یورپ په یو ملک کښې د جنګ په ورځو کښې کړے وے نو هغه به بلا شک و شبه په ټوپک ویشتلے شوے وُ. مګر سره د دې محمد اکبر خان صرف دومره وکړل چې هغه ئې د نور ورانې نه د منع کولو په خاطر ګرفتار کړو او د هغهٔ نگراني ئې سخته کړه. شیکسپیر په خپل خط کښې دا شان لیکي:

"تر کومه چې مونږ په جلال اباد کښې وو نو د کابل د مختلفو ډلو او د نور صورت حالات متعلق زمونږ د خبر رسانۍ ذریعه صرف هم هغه (یعنې موهن لعل) وُ عام طور سره به د هغهٔ خطونه په هفته کښې دوه ځله راتلل او ماته یاد نهٔ دي چې یو ځل هم د هغهٔ اطلاع غلطه ثابته شوي وي او د هغهٔ انتظام دومره ښهٔ وُ چې کومې چیټۍ د هغهٔ قاصدانو راوړې په هغوي کښې یوه هم د دشمن لاس ته نهٔ وه راغلې."

باوجود د موهن لعل د بدديانتۍ نه محمد اکبر خان ته چې څهٔ وخت د سر جارج پالک دا پیغام راورسیدو چې د موهن لعل په سخته نگرانۍ کولو باندې انګریزي حکام خفه کیږي نو په نهٔ ویشتمه جولایی محمد اکبر خان هغه بیا میجر پوټنګر، کپتان کنولي. ډرمنډ وغیره ؤ سره دیره کړو مګر د دې ځاے نه هم موهن لعل سر جارج پالک سره خفیه خط و کتابت بدستور جاري وساتلو. هغه دومره چالاک او فریبي هندو وُ چې هغه هم د محمد اکبر خان په سرو کښې او هم د نورو غازیانو سردارانو په نوکرانو کښې په رشوت او په روپو خان له قاصدان پیدا کړهٔ. حقیقت دا وُ چې د محکومیت په وجه د هغهٔ ذهنیت سخت غلامانه شوے وُ او د ډیر عمر نه ئې خپل ضمیر په پیسو خرڅ کړے وُ. کوم ګنده او پلید کار چې فیرنګیانو په خپله کول نهٔ غوښتل هغه به ئې په دې بدديانته ملازم باندې کول. اوس هم هزار ها دا شان هندوستانیان او پښتانهٔ شته چې د روپو، منصبونو او د خطابونو په لالچ ئې خپل ضمیر او ایمان خرڅ کړے دے او د خپلې ذاتي فائدې او ګټې په خاطر د خپل ملک او قوم فائدې قربانوي.

سره د دې چې محمد اکبر خان د موهن لعل په ذهنیت باندې ډېر ښهٔ پوهه وهٔ مګر چونکې هغه هندوستانے وهٔ نو کله کله به ئې په ډوډۍ ځان له راوبللو او ورسره به ئې په موجوده سیاسیاتو باندې تر ډېره وخته پورې بحث مباحثه کوله. موهن لعل وائي چې ځهٔ وخت د جنرل پالک فوځونو د کابل په طرف راوړاندې کیدل شروع کړل نو محمد اکبر خان به ما سره صلاح هم کوله چې ماله ځهٔ کول پکار دي؟ اګرچې د هغهٔ په ما باندې اعتبار نهٔ کیدلو خو کله کله به ئې ما نه تپوس کولو چې کهٔ چرې زهٔ ځان فیرنګیانو ته حواله کړم نو آیا هغوي به ما ژوندے پریږدي؟ ما هغهٔ ته په جواب کښې ووئیل چې اګرچې تهٔ به زما صلاح د پرې جنبې ګڼې ولې زهٔ درته وایم چې کهٔ چرې تهٔ د سر جارج پالک سلام له ورشے نو هغه به نهٔ صرف تا ژوندے پریږدي بلکې ستا ټول جرمونه او ګناهونه چې تا د انګریزانو برخلاف کړي دي هم معاف کړي.

د دې په جواب کښې هغهٔ ماته ووئیل چې کهٔ هر څومره تسلي ماله فیرنګیان راکړي خو زهٔ به ځان هغوي له ور نهٔ کړم. موهن لعل بیا مخکښې دا رنګ په خپل کتاب کښې لیکي:

" He had become so conversant with all the affairs of England by newspapers, and the old history read to him or related by some of us, the prisoners, that he perfectly made me silent by saying that Napolian, who was not considered a murderer, as he fears himself to be of the English envoy, relied upon the British Justice and in time of difficulty went on board on English ship; and the English Government, instead of showing him the privilege of the liberty of their land, made him a prisoner, and sent him to a distant island, where he died."

ترجمه : "هغهٔ د اخبارونو په ذریعه او د زوړ تاریخ په ذریعه چې کوم به هغهٔ ته په مونږ کښې ځنې قیدیانو لوستلو یا به ئې ورته زباني بیانولو. د انګلستان د ټولو واقعاتو نه دا شان ښهٔ واقف شوے وهٔ چې هغهٔ په دې وینا بالکل زهٔ چپ کړم چې اګرچې نپولین چې چا هغه قاتل هم نهٔ ګڼلو لکه چې څرنګ زما ویره ده چې زهٔ انګریزي سفیر یم په انګریزي انصاف باندې اعتبار وکړو او د تکلیف په وخت کښې په یو انګریزي جهاز باندې سور شو نو حکومت برطانیه په ځاے د دې چې هغهٔ ته د خپل ملک د ازادۍ حق ورکړي نو هغه ئې قیدي کړو او یوې لرې جزیرې ته ئې واستولو چې په هغې کښې هغه مړ شو."

د موهن لعل نه علاوه د کابل په ښار کښې کپتان ټروپ، میجر پوټنګر، کپتان جان کنولي، کپتان ډرمنډ او کپتان لارنس وغیره د محمد زمان خان په کور کښې په طور د یرغمال دیره وو. یو ځل په دې افسرانو هم د غازیانو یو بې قاعدې ټولي د محمد زمان خان په کور کښې حمله وکړه ولې محمد زمان خان د هغوي په پښو کښې خپل پټکے وغورځولو او ورته ئې منت وکړو چې از براے خدا زما د کور پرده دا شان مهٔ اخلئ. د دې نه پس هغهٔ دا قیدیان د مزید حفاظت دپاره د میر واعظ کور ته واستول. لفټیننټ ایري دا رنګ لیکي :

" Before sending them to the Mir Wayze, which was done at night, he took the precaution to line the streets with his own followers, with strict orders to fire upon every one who should so much as poke his head out of a window, and be not only accompanied them himself, but sent his own Family on ahead."

ترجمه : "هغهٔ هغوي د شپې د مير واعظ کور ته د استولو نه وړومبے دا احتياط وکړو چې خپل سړي ئ په ټولو کوڅو کښې ودرول او سخت حکم ئ وکړو چې کهٔ چا د خپلې کړکۍ نه سر قدرې راوويستو نو په هغهٔ ډز کوئ او نهٔ تش دا چې هغه هغوي سره ملګرے لاړو بلکې د هغوي نه ئ مخکښې د خپل کور خلق هم واستول."

په لسمه جولائي محمد اکبر خان دا ټول قيديان د مير واعظ د کور نه راوستل او د حفاظت په خاطر ئ په بالاحصار کښې ديره کړل. هم په دغه تاريخ محمد اکبر خان کپتان ټروپ سره د حاجي بختيار جلال اباد ته جنرل پالک له بيا د صلح د خبرو اترو دپاره واستولو. جنرل پالک محمد شاه خان ته ليکلي وو چې فيرنګيان به د پښتنو، او پښتانهٔ دې انګريزي قيديان ټول پريږدي. د پښتنو په قيديانو کښې دوست محمد خان امير هم شامل وهٔ. محمد اکبر خان او د قام نورو خلقو دا تجويز منظور کړو خو دا شرط ئ ورسره کښيښودو چې د جنرل پالک او د جنرل ناټ فوځونه چې په کابل باندې د پيش قدمۍ کول غوښتل واپس هندوستان ته لاړ شي.

جنرل پالک دا شرط منظور کړو او صاف طور سره ئ دا ووئيل چې انګريزي فوځونه به سمدستي د افغانستان نه واپس لاړ شي څهٔ وخت چې قيديان رها کړې شي ولې هر کله چې محمد اکبر خان د جنرل پالک نه دا مطالبه وکړه چې تهٔ د زباني معاهدې مطابق ما له خپله دستخطي اقرار نامه راوليږه نو هله پسته به زهٔ قيديان درپريږدم نو جنرل پالک ټال مټول شروع کړل ځکه چې هر کله جنرل موصوف د دې شرط اطلاع وائسرائے ته ورکړه نو هغهٔ جنرل پالک ته وليکل چې تهٔ د جلال اباد د طرف نه او جنرل ناټ دې د قندهار د طرف نه سمدستي په کابل باندې پيش قدمي شروع کړي.

کپتان ټروپ چې د جلال اباد نه واپس راغلو نو محمد اکبر خان ته ئ هيڅ غوټ پريکړے جواب ور نهٔ کړو. ځکه چې هغهٔ ته خو معلومه وه چې انګريزي فوځ د دوؤ طرفو نه په کابل باندې د راختو تيارے کوي مګر هر کله چې محمد اکبر خان د هغهٔ نه د يو صاف جواب تپوس وکړو نو هغهٔ ورته ووې چې جنرل پالک تحرير لوظنامې کولو ته تيار نهٔ دے. کپتان ټروپ بيا دا ټولې خبرې خپلو ملګرو سره وکړې چنانچه لفټيننټ ايري په خپل کتاب کښې د دې متعلق دا شان ليکي :

" He ( Capt. Troup ) told us that Akbar was, as might have been expected, much disappointed at General Pollock's refusal to conclude the treaty in writing; and so anxious was Akbar to bring the matter to a favourable close, that he offered

to release us all at once, if Capt. Troup would only guarantee that General Pollock should act up to his words and forthwith return to India. This offer Capt. Troup could not, of course, accept, knowing, as he did full well, the intention of the General to advance."

ترجمه : "کپتان ټروپ مونږ ته ووئیل چې محمد اکبر لکه څنګه چې توقع کیده د جنرل پالک په تحریري لوظنامه نهٔ کولو باندې ډیر مایوسه شو او اکبر دومره فکرمند وهٔ چې دا معامله دې خاطر خواه فیصله شي. چې هغهٔ مونږ فوراً پریښودو ته تیار شو په شرط د دې چې کپتان ټروپ هغهٔ له دومره ذمه واري ورکړي چې جنرل پالک به د خپل اقرار پابندي وکړي او سمدستي به هندوستان ته واپس شي مګر دا ذمه واري کپتان ټروپ څرنګ ورکولے شوه څکه چې هغهٔ ته پوره معلومه وه چې جنرل موصوف د پیش قدمۍ اراده کړې ده."

دا قدرتي خبره وه چې محمد اکبر خان د کپتان ټروپ په دې طریقه ناکام راتلو باندې ډیر په قهر شوے وهٔ چنانچه هغهٔ په نهٔ ویشتم جولائي کپتان ټروپ او کپتان لارنس سره بیا یوه جرګه وکړه او هغوی ئ بیا جنرل پالک له په تلو باندې مائل کړل. مګر د هغوی د روانیدو نه وړومبے هغهٔ په عام دربار کښې په قهر او په غصه دې دواړو افسرانو ته ووئیل چې کهٔ د جنرل پالک او جنرل ناټ په فوځونو کښې یو هم په کابل پیش قدمي شروع کړه نو زهٔ به تاسو ټول ترکستان ته ولیږم او په هغه ځاے کښې به تاسو په مختلفو سردارانو باندې په طور د غلامانو تقسیم کړم. په دې دربار کښې هغهٔ د جنرل پالک ډیر بد ووئیل او دا رائ ئ ظاهره کړه چې جنرل پالک ماله د دهوکې راکولو کوشش کوي څکه چې په خلهٔ خو هغه وائي چې کهٔ چرې انګریزي قیدیان رها کړې شول نو جنرل ناټ او زهٔ به خپل خپل فوځونه واپس هندوستان ته بوځو مګر څهٔ وخت چې زهٔ هغهٔ ته دا ووایم چې دا خبره په تحریر کښې راوله نو د هغې نه انکار کوي.

په کومه ورځ چې دا دواړه افسران جلال اباد ته دوباره روان شول نو هم په هغه ورځ محمد اکبر خان د جنرل پالک د خواهش مطابق موهن لعل ازاد کړو او کومې اتلس زره روپۍ چې هغهٔ د دهٔ نه اخستې وے هغه ئ هم ورته واپس کړې.

دا صرف د دې دپاره محمد اکبر خان وکړل چې جنرل پالک په دې خوشحال شي او زما په نیک نیتۍ باندې اعتبار وکړي. د محمد اکبر خان دا کوشش وهٔ چې د افغانستان ملک د انګریزي فوځ د دست برد نه بچ کړم او زهٔ ټول انګریزي قیدیان رها کړم او فیرنګیان ټول پښتانهٔ قیدیان رها کړي او په دې طریقه د فیرنګیانو او د پښتنو تر منځه د باهمي رنځ او خفګان خاتمه وشي.

مګر د جنرل پالک دا خیال وهٔ چې زهٔ دې د فیرنګیانو د فوځ د تباهۍ او د میکناټن او د نورو فیرنګیانو افسرانو د قتل په دا شان بدل د افغانستان د پښتنو نه واخلم چې د

حکومت برطانیه ورک شوے عزت او تباه شوے وقار په دې سرزمین کښې بیا قائم کړم. دا هم د هغهٔ یقین وهٔ چې په کابل کښې قزلباشو او د انګریزانو د پرې د یو لوے ټولي په موجودګی کښې به محمد اکبر خان هیڅرې هم د انګریزي قیدیانو ترکستان ته په بوتلو کښې کامیاب نهٔ شي. چنانچه هغهٔ شیرین خان قزلباش او نور د هغهٔ په شان سردارانو ته خطونه ولیکل چې کهٔ چرې تاسو محمد اکبر سره د انګریزي قیدیانو ترکستان ته د بوتلو په وخت مزاحم شوئ او هغه مو په خپله اراده کښې ناکامیاب کړو نو زهٔ به ستاسو تیر شوي جرمونه معاف کړم ولې کهٔ محمد اکبر خان دا قیدیان ترکستان ته بوتلل نو زهٔ به د کابل ښار لوټې لوټې کړم.

مګر کوم فیرنګیان چې په کابل کښې موجود وو او د حقیقي صورت حال نه واقف وو هغوي ته دا معلومه وه چې محمد اکبر خان په افغانستان کښې او په کابل کښې دومره اقتدار او طاقت حاصل کړے دے چې د هغهٔ مخې له په دې معامله کښې هیڅوک نهٔ شي راتلے. او نهٔ هغه د خپلې ارادې نه په زور منع کولے شي له دې کبله څهٔ وخت چې هغوي ته دا معلومه شوه چې انګریزي فوځ به ضرور په کابل پیش قدمي کوي نو په هغوي کښې سخت هیبت او خوف پیدا شو. بهرکیف دا دواړه افسران (کپتان ټروپ او لارنس) د محمد اکبر خان په وینا یو ځل بیا جلال اباد ته روان شول. او په نهم اګست هغوي د جنرل پالک نه واپس کابل ته راورسیدل. مګر د فیرنګیانو قیدیانو دپاره ئې هیڅ د زړهٔ د خوږیدو خبر رانهٔ وړو. جنرل پالک هم هغه شان په دې خبره باندې اصرار کولو چې محمد اکبر خان دې انګریزي قیدیان سمدستي پریږدي. مګر محمد اکبر خان هم د تحریري لوظنامې نه بغیر دې کار ته تیار نهٔ شو.

هرکله چې دا معامله فیصله شوه او هغه د جنرل پالک په نیت باندې پوهه شو نو محمد اکبر خان میجر پوټنګر او د هغهٔ پنځهٔ ملګري د کابل ښار نه وویستل او د علي محمد قزلباش هغې قلعې ته ئې راوستل چې په کومه کښې د میکناټن ښځه، لفټیننټ ایري، د هغهٔ ښځه، لیډي سیل وغیره دیره وو. د دې نه دې قیدیانو ته دا معلومه شوه چې اوس محمد اکبر خان مونږ بامیان طرف ته د استولو اراده لري. دې سره سم محمد اکبر خان دا حکم هم وکړو چې انګریزي قیدیان دې د جنرل پالک کیمپ سره نور خط و کتابت نهٔ کوي.

په دې ټولي کښې کپتان جان کنولي په دویم اګست باندې په تبه سخت ناجوړه شو او په اووم اګست د دې تبې نه مړ شو. د دهٔ دوه نور مشران ورونه ایډورډ کنولي او ارتهر کنولي او درې واړه ورونه د میکناټن خپلوان وو. دا درې واړه ورونه د لارډ کین فوځ سره افغانستان ته په کال 1839ء کښې راغلي وو. جان کنولي خو د ابتدائي تحریک ازادی نه سرداران کابل په کال 1841ء کښې په طور د یرغمال ساتلے وهٔ. آرتهر کنولي په کوهستان

کښې په يوه قلا باندې د حملې کولو په وخت کښې په ګولۍ ولګيدو او مړ شو. او ايډورډ کنولي چې بخارا ته په پوليټيکل مخبرۍ باندې استولے شوے وۀ د شاه بخارا په حکم باندې کرنل سټهارټ سره قتل کړې شو.

په دې منځکښې جنرل پالک او جنرل ناټ دواړو په کابل باندې پيش قدمي راواخسته پس محمد اکبر خان د خپلې وينا مطابق په پنځويشتم اګسټ حکم وکړو چې انګريزي قيديان دې ټول باميان ته واستولے شي.

کپتان ټروپ او کپتان بائي ګريو خو هغه ځان سره وساتل او مسز اينډرسن او مسز ټريور چونکې ډيرې ناجوړه وے له دې کبله هغوي د ډاکټر کمبل په نګرانۍ کښې د کابل په ښار کښې پاتې شوې. او باقي نور ټول قيديان، ښځې په کجاوو کښې او سړې په اسونو قريباً لس نيمې بجې د شپې د سپوږمۍ په رڼا کښې روان کړې شول او د هغوي د حفاظت دپاره قريباً درې سوه يا شلور سوه سړي سره د ټوپکو د صالح محمد د کمان لاندې مقرر شو. دا هم هغه صالح محمد خان وۀ چې په 1840ء کښې د باميان په حمله کښې د انګريزي فوځ نه د امير دوست محمد خان لښکر ته اوړيدلے وۀ. دې ټولې د لوګر د درې په لار د چارديهه کلي ته مخه وکړه. او د شپاړسو ميلو د مزل نه پس نهۀ بجې سحر په شپږويشتم اګست قلعه قاضي ته ورسيدل. په دې ټول سفر کښې انګريزي ميمانو د پښتنو ښځو جامې واغوستې او د ململو برقعې ئې هم په سر کړې. دې ټولې سره غرمې غرمې ته ديرش هغه ګوره سپاهيان هم شامل شول چې د انقلاب په ابتدا کښې د لفټيننټ ايونز د نګرانۍ د لاندې د ناجوړتيا په سبب په کابل کښې د انګريزي فوځ نه وروستو پاتې شوي وو.

په اوويشتم اګست دوه بجه د نيمې شپې دا ټول ټولے د درۀ ميدان په لاره باندې د کته سرو مقام ته ورسيدو دا مقام په قدرتي مناظرو کښې دومره ښکلے وۀ چې لفټيننټ ايري سره د دومره مصيبتونو او تکليفونو چې د جنګ په وجه لازمي وو د دې مقام په تعريف کښې، مګر د پښتنو د قوم د خانه جنګو او بې اتفاقو په بدو کښې دا شان ليکي :

" Lower down the declivety, about the middle of the valley ( which was here about a mile wide ), there ran a small river carrying fertility along its banks. Picturesque clumps of poplars and willows here and there broke the view, the intervening space being filled up with green and yellow fields of cultivation. Bare and rugged mountains everywhere bounded the lanscape. Here, as we reclined our wearied limbs, and looked round on the smiling scene which everywhere charmed the eye, we wondered that the inhabitants of so favoured a spot should be insensible to the blessings of peace; that the loveliness of nature, and the quiet occupation of husbandry should have so little power to soften the heart and subdue the fierce passions of savage men, who here,as elsewhere throughout Afghanistan, have like the untameable descendants of Esau, their hand against every man, and

**every man's hand against them. We were told that the whole of this seemingly peaceful valley was so distracted by blood-feuds, that the inhabitants scarcely dared to venture a few hundred yards from their own dwelling."**

ترجمه : "په اترايي باندې چې لږ نور ښکته شے نو د درې په منځکښې ( په دې ځاے کښې دره يو ميل قدرې پلنه ده) يو ور کوټے شان وله بهيږي چې دواړه طرف ته ئ ملک زرخيز او سبزه زار کړے وۀ يو ځاے بل ځاے ښکلے ښکلے جنګی د چينارونو او ولو په نظر راتلې. او په منځکښې په پټو کښې شين او زيړ فصل ولاړ وۀ. د دې ټول منظر نه چارچاپيره بربنډ او زيړ غرونه پراتۀ دي په دې ځاے کښې هر کله چې مونږ خپل سترې اندامونه وغزول نو مونږ په زړۀ کښې تعجب وکړو چې د داسې ملک وسيدونکي چې په هغوي خداے دا شان فضل کړے دے د امن د نعمتونو نه ولې ناواقفه دي. اودا چې د قدرت ښکلے والے او د زراعت خاموشه پيشه دومره طاقت په خپل ځان کښې نه لري چې د هغوي زړونه نرم کړي. او د دې وحشي خلقو تند خويه جذباتو له مات ور کړي.

په دې ځاے کښې هم دا خلق د نور ټول افغانستان د خلقو په شان دا رنګ بدامن وو چې د ايسو د نا اموخته قام په شان د هغوي لاسونه د هر چا برخلاف وچت وو او د هر چا لاسونه د هغوي برخلاف وچت وو. مونږ ته خلقو ووئيل چې دا ټوله دره چې په ظاهره دا شان پرامن ښکاريدله د قتلونو د دشمنو نه دا شان پريشانه ده چې د هغې وسيدونکي د خپلو کورونو نه يو څو سوه ګزه هم بهر ته نشي وتے : "

په اتويشتم اګست دوه بجې د شپې بيا دا ټولے روان شو او قريباً د څوارلس ميلو مزل نه پس د ټک خانې په مقام د سرچشمې نه څلور ميله ديخوا ته د يوې ولې په خوا کښې ديره شو دا مقام د بلخ په لويه لار باندې پروت دے چنانچه ډير خلق د چارچاپيره کلو نه انګور، سيبان ، ناشپاتۍ او خرمانې په دې لار باندې کابل ته وړي.

په نهۀ ويشتم اګست نمر خاتۀ وخت دوئ بيا ټول د دې ځاے نه مخ په قبله په لويه لار باندې روان شو او د هزارؤ په ملک کښې داخل شو. د اونی د مقام نه دوه ميله ديخوا ته يو قزلباش سردار چې په خوا کښې د هغۀ قلا پرته ده دې ټولې له ورې ورې ډوډۍ د خوراک دپاره راوړې. د افغانستان قزلباش عام طور د انګريزانو طرفدار وو. او څۀ وخت چې دا سردار د دې فيرنګيانو نه خبر شو نو هغۀ دوئ له دا ميلمستيا په لاره کښې وکړه.

چونکې د هزارؤ يوه حصه شيعه ګان دي او قزلباش هم شيعه ګان دي د دې دپاره د هزارؤ په شيعه ګانو کښې د قزلباشو ډير رسوخ دے. د دې نه پس دا ټولے د اونی په مقام باندې ديره شو. په ديرشم اګست درې بجې سحر دې ټولې بيا د اونی په کنډاؤ باندې ختل شروع کړل. او دولسو ميلو مزل نه پس د هلمند سيند خوا ته راکوز شول. او د سيند په غاړه د ګردن ديوال په مقام باندې ئ پړاؤ وکړو. په دغه مقام باندې يو څو هزارؤ غلو د صالح

محمد خان په گارډ باندې چپاؤ وکړو. ولې په غلو کښې یو کس مړ شو او دوه ونیوے شول.

په یو دیرشم اگست څلور بجې مازیگر بیا دوئ مخ په بره روان شو. او د کارزار په تنگه دره کښې ئې پړاؤ وکړو په دې دره کښې د اوربشو فصل لا تک شین ولاړ وۀ.

په اول ستمبر دا ټولے د حاجي گک په کنډاؤ باندې ورواړیدو د حاجي گک د غرۀ سوکه دولس زره څلور سوه فټه د سطح سمندر نه وچته ده. اوربشې او غنم لا هم هغه شان شنۀ ولاړ وو.

په دویم ستمبر نمرخاتۀ وخت دوئ د کالو په کنډاؤ باندې وروختل د کالو د غرۀ سوکه دیارلس زره څلور سوه فټه د سطح سمندر نه وچته ده. د دې نه مخکښې سفر ډیر تکلیف ده او د محنت سفر وۀ. اخر دوئ د قلعه توپچي په مقام باندې دیره شول. د دې ځاے نه بامیان او د هغې مشهورې سمستې په لرې فاصله کښې ښکاریدلے.

په دریم ستمبر دوئ بیا د بامیان طرف ته روان شول د دې ټولې په لاره کښې د بامیان دوه مشهور لوے لوے بتان چې د غرۀ په گوټ کښې د قدیم الایام نه په گټه کښې پریکړې شوي دي راغلل. دا بتان عجیب و غریب دي او د زړې زمانې د خلقو د بت تراشی یو بې نظیره نمونه ده. وړومبے بت د ښځې دے چې په دنگوالي کښې شپږ شلې فټه وچت دے د دې نه څلور سوه گزه مخکښې په دغه گوټ کښې یو بل بت د سړي دے چې اتۀ شلې فټه دنگ دے. دا دواړه بتان په لویو لویو تاخونو کښې جوړ شوي دي او د سر دپاره ئې ټول د گتې چت منقش دے. دا ټول گټ په خپله قریباً درې سوه فټه دنگ دے او په هغې کښې عین تر سوکې پورې بیشماره سمستې کنستلي شوي دي. د دې بتانو د پښو نه تر سره پورې په گوټ کښې دننه د اندرپایې پاټکي هم جوړ شوي دي او بنیادم د بت د پښو نه تر سره پورې ختې شي. د لوے بت د لاندې قریباً نیمه پلټن ځائیدے شي. د لوے بت نوم سلسال دے او د ووړوکي بت نوم شاه مما دے.

دا ټول ټولے د دې ځاے نه قریباً یو میل اخوا بهر په خیمو کښې دیره کړې شول ځکه چې دننه په کوټو کښې هغوي وسیدل نۀ غوښتل. د دریم ستمبر نه تر نهم ستمبر پورې دوئ هم په دغه ځاے دیره وو.

په نهم تاریخ باندې دوئ صالح محمد یوې قلا ته بوتلل. په یوولسم ستمبر د محمد اکبر خان حکم صالح محمد له راورسیدو چې انگریزي قیدیان فوراً خلم طرف ته روان کړه مگر هم په دغه ورځ لس بجې سحر صالح محمد میجر پوټنگر ته ووئیل چې کۀ چرې تاسو ماله شل زره روپۍ نغدې او یو زر روپۍ ماهوار پنشن زما تر ژونده پورې راکوئ نو زۀ به تاسو سمدستي جنرل پالک ته ورسوم.

میجر پوټنگر سره د کپتان لارنس او جانسن دا اقرار سمدستي په یو کاغذ باندې

ولیکلو او ذمه واري ئ واخسته چې زمونږ حکومت به د دې اقرار مطابق دا رقم تا له در کوي.
کپتان میکنزي او نورو ټولو افسرانو هم په دې کاغذ باندې دستخطونه وکړل ماسوائ د بریګیډیر جنرل شیلټن او کرنل پامر نه. چې هغوي وئیل چې په دې به د محمد اکبر خان او زمونږ تعلقات نور هم خراب شي ولې هغوي او نورو ټولو قیدي افسرانو او ښځو میجر پوټنګر دوئ له دا اقرار ورکړو چې کۀ چرې مونږ ازاد شو نو مونږ به هم خپله حصه ورکوؤ.

اصلي اقرار نامه چې کومه میجر پوټنګر وغیره صالح محمد سره په دې باره کښې کړې وه هغه خو په فارسۍ کښې وه. ولې د انګریزي ترجمه ئ دا ده :

" We gentlemen, Pottinger, Johnson, Mackenzine, and Lawrence,in the presence of God and Jesus Christ, do enter into the following agreement with Saleh Mohd Khan: whenever Sakeg Mohd Khan shall free us from the power of Mohd Akbar Khan we agree to make him ( Saleh Mohd Khan ) a present of twenty thousand rupees; likewise to obtain for him the command of a regiment in the Govt; service; and we attest that this agreement is not false; and should we have spoken falsely then will we acknowledge ourselves to be false men even in the presence of Kings."

ترجمه : "مایانکه پوټنګر، جانسن ، میکنزي، او لارنس او خدایے او حضرت عیسیٰ علیه السلام په مخکښې صالح محمد خان سره دا لوظنامه کوؤ هر کله چې صالح محمد خان مونږ د محمد اکبر خان د لاس نه ازاد کړي نو مونږ هغۀ له (یعنې صالح محمد خان) د شلو زرو روپو نغدو او د یو زر روپو د ماهواري پنشن ورکولو اقرار کوؤ او دغه شان به مونږ هغۀ له په سرکاري ملازمت کښې د یو پلټنې کمان هم اخلو.

مونږ تصدیق کوؤ چې دا اقرار نامه دروغژنه نۀ ده او کۀ چرې مونږ دروغ وئیلي وي نو مونږ به دا خبره د بادشاهانو په مخکښې هم تسلیم کړو چې مونږ دروغژن یو."

په حقیقت کښې د رشوت دا سودا صالح محمد سره وړومبے د موهن لعل په خلۀ شوې وه نو هر کله چې دا قیدیان بامیان ته ورسیدل نو موهن لعل خپل یو کشمیرے واقف سید مرتضیٰ شاه نومے بامیان ته صالح محمد پسې راولیږلو او ورته ئ پیغام ورکړو چې کۀ چرې صالح محمد خان دا قیدیان جنرل پالک ته واپس وروړسول نو زۀ به هغۀ له شل زره روپۍ نغدې او یو زر روپۍ د میاشتې پنشن تر ژوندانۀ پورې ورکړم. او مرتضیٰ شاه له به پنځۀ زره روپۍ نغدې او یو معقول پنشن مقرر کړم.

د دې رشوت د لالچ نه علاوه د صالح محمد د کور خلق هم دغه وخت د قزلباشو په چم چنداول کښې وسیدل. او قزلباشو د هغۀ ورور ته ووئیل چې کۀ چرې صالح محمد دا تجویز منظور نۀ کړو نو مونږ به د هغۀ د کور خلقو ته سخت نقصان ورسوؤ. صالح محمد

سره چې دا فيصله وشوه نو سوال دا پيدا شو چې د صالح محمد يو بل ملګرے چې هغۀ سره د برابر اختيار خاوند وۀ او محمد اکبر خان هغه صالح محمد سره يو ځاے ليږلے وۀ او د هغۀ ډير لوړے اعتباري وۀ څرنګ د لارې نه بيرته کړې شي. د دې سړي نوم مير آخور وۀ او يو سل غلجي د هغۀ زير فرمان وو له دې کبله دې ټول ټولي دا سازش وکړو چې مير آخور په څۀ چل هنر ګرفتارول پکار دي. صالح محمد خپل زير فرمان سپاهيانو سره مصلحت وکړو چې زۀ به تاسو ټول د مابنام په وخت کښې پريږده ته راجمع کړم نو تاسو دا شور جوړ کړئ چې زمونږ تنخواه لا تراوسه پوره چا نۀ ده راکړے او مونږ يو قدم هم نور وړاندې نۀ ږدو.

د دې نه پس به بغاوت جوړ کړو او په دې علاقه کښې به خپل حکومت قائم کړو چنانچه په يوولسم ستمبر مابنام په دې تجويز باندې عمل وشو او په دولسم ستمبر سحر وختي صالح محمد او فيرنګيانو خپله يوه جنډه په يو برج باندې ولګوله او چونکې د سپاهيانو د خوشحالولو دپاره د روپو ضرورت وۀ دې ټول ټولي يوه قافله چې د بخارا نه راروانه وه په زور راونيوله او څلور سوه روپۍ ئې ترينه په طور د محصول واخستې. بيا سمدستي ميجر پوټنګر لګي شو او د باميان د علاقې يو نوے ګورنر ئې مقرر کړو او د انګريزې حکومت د طرف نه ئې د چارچاپيره علاقې هزاره سردارانو سره د انعامونو او اکرامونو لوې لوې وعدې وکړې. د دې ټولې واقعې دومره لوے اثر په عامو خلقو باندې وشو چې ذوالفقار خان د باميان زوړ ګورنر هم مابنام مابنام کښې ميجر پوټنګر له راغے او د اطاعت اظهار ئې وکړو. دۀ سره هم ميجر پوټنګر ډيرې وعدې وکړې.

په دې اثنا کښې مير آخور د صالح محمد د دې ټولو بې ايمانو نه خبر شو او بغير د مقابلې کولو نه د ذوالفقار خان قلعه کښې پناه ګزين شو هم په دغه ورځ يعنې په دولسم ستمبر ميجر پوټنګر د دې ټولې معاملې خبر جنرل پالک ته ورکړو.

چونکې دې ټولي او صالح محمد سره د دې نمک حرامۍ او بدعهدۍ په سبب د محمد اکبر خان د طرف نه د حملې سخته ويره وه له دې کبله هغوي خپل ټول اسباب وغيره نورو دوؤ قلعه ګانو ته يوړلو او د خپل ځان د حفاظت دپاره ئې د جنګ ټول انتظامات پوره کړل. په دې منځکښې د چارچاپيره علاقې نه د هزاره قبائلو مشرانو صالح محمد او ميجر پوټنګر سره د دوستۍ او د امداد جرګې راواخستې مګر ديخوا محمد اکبر خان د جنرل پالک د مقابلې دپاره په تيارۍ کښې همه تن مصروف وۀ. په شلم اګست جنرل پالک د جلال اباد نه د بدل اخستو دپاره د کابل په طرف راروان شو او بې مقابلې تر بتخاکه پورې راغلو. محمد اکبر خان او خان شيرين خان د قزلباشو مشر سره د پنځو زرو سورو د هغۀ مقابلې ته راووتو. او په دغه مقام باندې چې د کابل نه څوارلس ميله لرې دے دواړه فوځونه مخامخ شول. د يو څو ورځو د جنګ نه پس خان شيرين خان سره د خپلو سړو فيرنګيانو

طرف تـه وتښتیـدو. اګـر چې دې دغابازۍ د محمد اکبر خان د قسمت فیصله وکړه مګر بیا هـم مـحـمـد اکبر خان په جنرل پالک باندې سخته حمله وکړه او د پنځو ګینټو د زبردست جنګ نـه پـس ئې شکست وخوړو. او په خپله د کوهستان په لوري سره د کپتان بائي ګریو چې هغهٔ سره یرغمال قیدي وهٔ وتښتیدو. د کوهستان نه هغه بیا خلم ته لاړو او هرکله چې د جنـرل پـالک فـوځـونـه کابل ته راورسیدل نو هغهٔ کپتان بائي ګریو جنرل پالک له کابل ته راواستولو. او هغهٔ ته ئې صحیح سلامت حواله کړو.

جنرل پالک کابل ته د رارسیدو سره په پنځلسم ستمبر شپږ سوه سوارهٔ د قزلباشو د سـر رچـمـنـډ شیکسپیر چې د جنرل پالک فوځي سکتر وهٔ د کمان لاندې بامیان په طرف د انګریزي قیدیانو د راوستو دپاره ولیږل. د قزلباشو دې رسالې له هغهٔ لس زره روپۍ ور کړې. دیـخـوا صـالـح مـحـمـد په شپاړسم ستمبر د بامیان نه سره د دې ټولو قیدیانو د کابل په طرف راروان شوے وهٔ او پـه اوولسم ستمبر د کالو او د حاجي ګک د غرونو ترمنځه د قزلباشو دا دستـه او انـګـریـزي قیـدیان نر او ښځې او بچي سره یو ځاے شول. او په خپل خلاصي باندې دومـره خـوشـحـالـه شـول لـکه چې مړي د قبر نه بیا ژوندي شي. دا ټول کسان بیا په یویشتم ستمبر کابل ته راورسیدل.

پـه دې ټـول انـقـلاب کښې د فیرنګیانو یو سل او دوه تنه برټش افسران قتل شول او نـولـس تـنـه ژونـدي پـاتې شول چې په هغوي کښې جنرل ایلفنسټن په خپل مرګ مړ شو او ډاکټر برائیډن جلال اباد ته ژوندے خلاص شو او نور ټول قیدیان شول. ټول ټال دوه دیرش تـنـه بـرټـش افسـران د غـزني او د کابل د فوځ نه محمد اکبر خان سره قیدیان وو. د دوئ نه عـلاوه ډیـرې ښځې، بچي او نور ګوره سپاهیان چې په شما رکښې قریباً یو پنځوس تنه وو هم هغهٔ سره قیدیان وو او د صالح محمد د لاس نه خلاص شول.

## باب

قبل د دې نـه چـې مونږ د قندهار د علاقې د نومبر 1841ء د جـنـګ ازادی تفصیلي ذکـر وکـړو مـناسب دي چې د دې طرف په هغې ټولو سیاسي واقعاتو پوره پوره تبصره وکړو چې کوم د دې کال په ابتدا کښې پیښ شوي وو.

د کال 1841ء پـه سپـرلـي کښې د قلات غلزي په علاقه د فیرنګیانو برخلاف متواتر بـغاوتونه د اولس عام خلقو وکړل. د دې بغاوتونو مشر ګل محمد خان وهٔ چې د ګورو په نوم بـاندې مشهور وهٔ. غلجیانو د شاه شجاع د راتلو په ابتدا کښې هم د دې خان په مشرۍ کښې د لارډ کیـن د فوځونو مقابله کړې وه مګر د دې سپرلي 1841ء د عام بغاوت قصه دا شان وه

چې میجر لیچ په قلات غلزي کښې فیرنګے پولیټیکل ایجنټ وهٔ هغهٔ په یوه ډیره معمولي خبره باندې د غلجو د قبیلې په یوه قلا باندې صرف په دې وجه حمله وکړه چې د هغې قلا خلقو هغه د معائنې دپاره قلا ته دننه نهٔ پرېښودو په دې خبره دا متکبر اود رعونت نه ډک فیرنګے دومره ناراض شو چې هغهٔ سمدستي د قلات غلزي نه ټول انګریزي فوځ راوغوښتو او په دې ورې قلا باندې ئې په ډیر فوځي نمائش سره په توپو ګوله باري او په سپاهیانو حمله وکړه.

د قلا مالک په ډیرې بهادرۍ سره جنګ وکړو ولې فیرنګیانو سره توپې او باقاعده فوځ وهٔ نو لیچ قلا خو واخسته ولې اماني غلجي ئې په خپله بې وقوفي او تکبر هیڅ بې هیڅه د فیرنګیانو نه ناراض کړل. هرکله چې میکناټن او لارډ آکلینډ د دې واقعې نه خبر شول نو هغوي سمدستي میجر لیچ د خپلې عهدې نه معزول کړو. خو په دې کښې ډیره موده واوړیده او ټول غلجي په دې ناجائز کار باندې راوچت شول. او په قلات غلزي کښې ئې په انګریزي فوځ باندې د حملې کولو تیاری وکړې.

انګریزانو د قندهار نه نور امداد راطلب کړو چنانچه جنرل ناټ کرنل وائمر سره د شلورو سوؤ باقاعده فوځ شلورو توپو او یوې رسالې د مئ په میاشت کښې د غلجو د مقابلې دپاره راولیږلو. دیخوا نه ګل محمد خان خپل غلجي د غرونو نه میدان ته راکوز کړل او په نولسمه مئ ئې په وائمر باندې یوه سخته حمله وکړه.

غلجو په دې جنګ کښې دومره بهادري وکړه چې د وائمر او د هغهٔ د فوځ نه ئې وار خطا کړو ولې غلجو سره د فیرنګیانو د توپو هیڅ علاج نهٔ وهٔ هغوي ډیر په ځوانمردۍ توري په لاس د وائمر په پیاده فوځ باندې ورپریوتل. ولې د توپو د لاسه ئې ډیر نقصان وچت کړو. غلجیانو په ډیر استقلال او ثابت قدمی د حملې نه پس حمله د وائمر په فوځ وکړه مګر هر ځل پسپا شول. پنځهٔ ګینټې متواتر بیحده ډیر خونریز جنګ وشو. مګر اخر ته غلجي په میدان پرېښودو مجبور شو. سره د دې وائمر او د هغهٔ فوځ د غلجو د حملې نه دومره متردد شوے وهٔ چې هغه صرف د غلجو د حملې نه د خپل ځان بچاؤ قدرې وکړې شو. او څهٔ وخت چې غلجي واپس شو نو هم دغه ئې غنیمت وګنلو او په هغوي پسې ئې تعاقب ونهٔ کړو.

د دې بغاوت نه لږ وړومبے سردار اختر خان علیزي هم ډیر لوے بغاوت د فیرنګیانو برخلاف کړے وهٔ مګر د غلجو د دې بغاوت په وخت کښې د هغهٔ د فیرنګیانو سره په خپله کښې صلح شوې وه. سردار اختر خان څو څو وارې د خپل ملک د ازادۍ دپاره د فیرنګیانو برخلاف شورشونه اغاز کړي وو ولې د انګریزي مال و دولت او د منظم فوځونو په مقابله کښې هغه هیڅ څهٔ د زړهٔ د خوږوالي کامیابي حاصله کړې نهٔ وه. او هر ځل چې به هغه میدان جنګ ته خپلې لښکرې د مقابلې دپاره راوویستلے نو باوجود د ډیرې بهادرۍ او د شجاعت

نه به ئ هر ځل شکست وخوړو.

میجر رالنسن د قندهار د ټولې علاقې پولیټیکل ایجنټ وۀ هغۀ دا شان د هغۀ په ملګرو کښې پرې جنبې پیدا کړې چې اخر کار هغۀ د زمینداور علاقې ته وتښتیدو او بیا به ئ د هغه ځاے نه همیش د انګریزانو د مقابلې دپاره په چارچاپیره علاقه کښې خلق پاڅول. په خپل متواتر شکستونو هغۀ همت او حوصله بالکل ونۀ بائلله. او د ابتدا نه تر اخره پورې هغۀ د خپل ملک د ازادولو خیال د زړۀ نه ونۀ ویستلو. فیرنګیانو اخر یو لوے فوځ زمینداور ته هم د هغۀ د مطیع کولو دپاره ولیږلو مګر دې فوځ سره میجر رالنسن خپل اسسټنټ پولیټیکل ایجنټ لفټیننټ ایلیټ د دې غرض دپاره ولیږلو چې کۀ چرې ممکن وي نو اختر خان سره دې دا شان صلح وکړې شي چې في الحال په زمینداور کښې امن قائم شي. فیرنګیانو چې د دې صلح دپاره کوشش کولو د هغې وجه دا وه چې په دې ورځو کښې د وزیر یار محمد خان د هرات او د فیرنګیانو هم سره طبیعتونه ډیر خړ وو ځکه چې د فیرنګیانو د نور افغانستان په شان په هرات کښې هم خپل سیاسي اثر او اقتدار قائمول غوښتل او یار محمد خان د دې سخت خلاف وۀ ولې چونکې هغۀ یواځې په ځان کښې د انګریزانو د مقابلې طاقت نۀ لیدلو له دې کبله هغۀ د فیرنګیانو د ویرولو دپاره بیا شاه ایران سره د روغې خبرې شروع کړې او هغۀ ته ئ ولیکل چې د انګریزانو په ځاے ماته د ایران اثر او اقتدار په هرات کښې زیاتي منظور دے ځکه چې ایران اخر یو مسلمان حکومت دے. او انګریزان د غیر مذهب خلق دي.

فیرنګیان د یار محمد خان د دې منصوبو نه بې خبره نۀ وو او نۀ یار محمد خان تش په دې قناعت وکړو چې ایران سره ئ د فیرنګیانو برخلاف د ساز باز جوړولو کوشش راواخستو بلکې اوس هغۀ د زمینداور په علاقه کښې هم ګوتې وهل شروع کړل او د ټول دراني قبائلو د راوچتولو، او د فیرنګیانو برخلاف د جنګ ازادی د آغاز کولو کوششونه ئ هم شروع کړل چنانچه هغۀ ټولو دراني سردارانو ته خطونه ولیکل چې تاسو د اختر خان د جنډې لاندې سره د خپلو خپلو لښکرو رایوځاے شئ او تیار کښینئ نو زۀ به هم په یو څو ورځو کښې د هرات نه در ورسم. او د مشهد نه به هم لس زره سپاهیان سره د دولسو توپو او دوه لکو روپو ستاسو امداد له درشي او بیا به یو ځاے په فیرنګیانو باندې د قندهار په علاقه کښې حمله کوؤ او دا علاقه به چې د درانو اصلي علاقه ده د غیر قومونو د غلامی نه خلاصوؤ.

فیرنګیانو ته چې د دې تجویز حال معلوم شو نو په هغوي کښې یو هیبت شان راپیدا شو او دا کوشش ئ راواخستو چې د دې حملې نه د بچ کیدو دپاره اختر خان سره صلح وکړي. دیخوا اختر خان ته دا معلومه شوه چې نۀ خو یار محمد خان ماله څۀ امداد راکولے شي او نۀ ایران ښکاره په ښکاره د فیرنګیانو برخلاف مقابلې دپاره میدان ته راوځي. پس هغۀ

د ایلیټ د تجویز نه فائده وچته کړه او د سردار عطا محمد خان په ځاے کښې د ایلیټ او د اختر خان ملاقات وشو. ایلیټ د اختر خان ټولې مطالبې منظورې کړې او یو خلعت ئې هم ورله ورکړو. او اختر خان دا لوظ وکړو چې زهٔ به خپلې لښکرې خورې کړم او نور جنګونه به فیرنګیانو سره نهٔ کوم. په ظاهره خو دا راضي نامه وشوه ولې د دې راضي نامې نه د فیرنګیانو مدعا دا وه چې د یار محمد خان او د سردار اختر خان جنبه خوره کړواو د دواړو په مینځکښې ښه بې اعتباري پیدا کړو. او هر کله چې د بیروني حملې ویره چې کومه فیرنګیانو ته د یار محمد خان د طرف نه پیدا شوې وه لرې شي نو بیا د هغوي دا خیال وهٔ چې په یو مناسب موقع به اختر خان رانیسو او په ښهٔ شان سره به ئې مسخر کوؤ. چنانچه کوم رپورټ چې رالنسن میکناټن ته د اختر خان د دې صلح متعلق یو څو ورځې پس استولے وهٔ د هغې نه د فیرنګیانو د دې چالبازۍ پته لګي. سر جان کے د خپل کتاب جلد نمبر دویم صفحه نمبر 117باندې دا رپورټ په دې الفاظو کښې درج کړے دے:

" I do not anticipate, that by the conciliatory treatment recommended by Lieut. Elliot, we gain any other advantage than that of temporary tranquility; and however prudent therefore it may be at present to induce the rebel chief of Zamindwar to abstain from disorders by the hope of obtaining through his forbearance substantial personal benefits, I still think that when the danger of foreign aggression is removed, and efficient means are at our disposal, the rights of his Majesty's Government should be asserted in that strong and dignified manner which can alone ensure a due respect being paid to his authority." '

ترجمه :"زما دا امید نشته چې د رضامندګۍ د دې سلوک نه چې د کوم لفټیننټ ایلیټ سفارش کوي مونږ ته سوائې د دې عارضي امن نه بله څهٔ فائده کیدے شي. او هر څومره چې في الحال دا خبره مناسب معلومیږي چې مونږ د زمینداور دا باغي سردار په دې مائل کړو چې هغه د شورش کولو نه باز راشي. او په دې طریقه مونږ د دې توقع وکړو چې د هغهٔ د باز راتلو په سبب به مونږ ته غټه ذاتي فائده ورسي. مګر تاهم زما دا خیال دے چې هر کله د بیروني حملې خطره ورکه شي او مونږ سره ښهٔ معقول ذرائع موجود وي نو پکار دي چې د اعلیٰ حضرت د حکومت حقوق دې په داسې مضبوطه او سنجیده طریقې سره قائم شي چې بیا آئنده د هغهٔ د اختیاراتو مناسب قدر او احترام کیږي."

سردار اختر خان هم دومره ناپوهه نهٔ وهٔ چې د فیرنګیانو په اصلي مدعا نهٔ وهٔ رسیدلے هغه ښهٔ خبر وهٔ چې فیرنګیان به په مستقبل قریب کښې چې یوه ښه موقع ورله په لاس ورشي ماته څهٔ نا څهٔ بهانه جوړوي او زما د ورکولو کوشش به کوي.

د دې نه علاوه اختر خان ته صرف د خپلو حقوقو لحاظ مد نظر نهٔ وهٔ بلکې د خپل قوم د ازادۍ خیال هم هر وخت د هغهٔ دامنګیر وهٔ له دې کبله هغه هر وخت په دې څؤ کښې

د دې نه پس څۀ نور فوځ هم بالاحصار ته د امداد دپاره بریګیډیر شیلټن ته راواستولے شو. د بالاحصار ټول فوځ سره د توپخانې د کابل په ټول ښار باندې بغیر د غازي او د غیر غازي د تمیز نه ګوله باري وکړه. حالانکې د برنس وغیره په قتل کښې قریباً پنځۀ شپږ سوه خلق به شامل وو. د دې عامې ګوله بارۍ ډیر خراب اثر د ښار په عامې ابادۍ وشو. چې هغوي ټولو په اتفاق سره خپل خپل کورونه خالي کړل او غازیانو سره د فیرنګیانو برخلاف شامل شول. او بل خوا ته ئې په مضافاتو کښې چارچاپیره د کومک دپاره سړي ولیږل او بیشماره ډیر کوهستانیان او غلجي د هغوي امداد ته سره د وسلو راغلل. او س ورځ په ورځ د غازیانو او د فیرنګیانو د باقاعده فوځ په منځکښې سخت خونریز جنګونه شروع شو او کوم امید چې په ابتدا کښې د فیرنګیانو په زړۀ کښې د دې بغاوت د دفع کولو وۀ هغه ټول قطع شو. چنانچه هغوي د قندهار کمان افسر ته د امداد رالیږلو دپاره یو ډیر ضروري خبر ولیږو او جنرل سیل ته ئې حکم وکړو چې د ګندمک نه سره د خپل بریګیډ واپس چاوڼۍ ته راشه. هم په دې ورځ یعنې په دریم نومبر د کوهدرې په مقام لفټیننټ رچرډمال او لفټیننټ وهیلر د خپل کوهستاني رجمټې د لاسه قتل شو.

په څلورم د نومبر غازیانو په شاه باغ کښې مورچه ولګوله او د محمد شریف په قلعه کښې ئې د خپل لښکر یوه دسته واچوله. او دغه شان ئې د چاوڼۍ او د فیرنګیانو د کمسریټ د قلعه په منځکښې د تلو راتلو لاره بالکل بنده کړه. اینسائن وارن سره د سلو سړو د کمسریټ په قلعه باندې قابض وۀ. غازیانو په دۀ باندې په ډیر زور سره حمله وکړه. فیرنګیانو سره ویره پیدا شوه چې غازیان به ډیر زر دا افسر قتل کړي کۀ چرې مونږ سمدستي هغۀ له امداد ور ونۀ لیږو. چنانچه اینسائن ګارډن سره د یوې کمپنۍ او یولسو اوښانو میخزین د هغۀ امداد ته واستولے شو مګر غازیانو هم په لاره باندې دې امداډي دستې له شکست ورکړو او اینسائن ګارډن په جنګ کښې قتل شو. په دې باندې جنرل ایلفنسټن دوه نورې کمپنۍ د کپتان سوین د لاندې د هغۀ امداد له ولیږلے مګر هغوي لا د چاوڼۍ نه هم په مشکله وتي وو چې د غازیانو نشان باز توپچیانو د محمد شریف د قلعه نه او د شاه باغ نه داسې زبردستې ګولۍ په هغوي باندې وورولے چې کپتان سوین او رابنسن د 44 نمبر پلټنې قتل شول. او لفټیننټ هلالهن او ایونز او فورټي زخمیان شول. او امدادي فوځ بغیر د خپل مقصد د حاصلولو نه چاوڼۍ ته واپس راغلل.

هم په دغه ورځ ماښام بیا د رسالې یوې دستې د اینسائن وارن د راوستو دپاره کوشش وکړو مګر غازیانو بیا داسې په نښه په هغوي ګولۍ وورولے چې اتۀ سپاهیان په هغوي کښې مړۀ شول او څوارلس زخمیان شول.

د چاوڼۍ د خلقو د ګزارې ټول دارومدار د کمسریټ په دې قلعه باندې وۀ د تمام

uneasiness. We will take such precautions as shall prevent the Ghilzyes from annoying us; and this is all that is requisite for the present. We may safely leave the rest to time. As to the documents protesting against the appointment of Samad, I look upon them as mere fudge-send for the Janbaz. Let them make a forced march by night, and come in the rear of Akhtar. Seize the villain, and hang him as high as Haman, and you will probably have no more disturbances. The Janbaz may remain out while the collections are going on if necessary. I have already explained to you that I never intended offering a reward for Akhtar's head, nor should I approve of encouraging the man who has a blood feud with him to put him out of the way. This, besides being objectionable, would be superfluous, because his enemy must know that we could not be otherwise than gratified at the removal of so atrocious a traitor, with regard to the Tymunees, all I meant was, that they should be encouraged to seize Akhtar if he attempted to take refuge in their territory and I thought that a large pecuniary reward would be necessary to overcome their natural scruples to such a proceeding."

ترجمه : ''ستا د اووم تاریخ خط ماته نن سحر راورسیدو زهٔ بیا بې مزې بحث مباحثه وچتول نهٔ غوارم ولې تاته ښه معلومه دے چې زهٔ د ابتدا نه تا سره په صفايي چلیدلے یم. او همیشه مې تاته هغه خبرې ښکاره کړے دي چې د کوم بابت ماته د شکایت کولو جائز وجوهات معلومیدل دا شکایت زهٔ صرف د یوې معاملې په بابت کښې کوم او هغه دا ده چې تهٔ زمونږ د حالت متعلق بلا وجه خراب خیال لرے او بیا په دا شان افواه گانو باندې پخپله هم عمل کوے او په خلقو کښې ئې هم خوروے. چې کوم د دې خیال په تائید کښې وي. زمونږ په مخکښې نور هم ډیر مشکلات شته او نور هم ډیر شکایت کونکي شته نو هسې بې ضرورته د دوئ په شمار کښې زیاتے کول پکار نهٔ دي. ما اوس د مسټر ډلاس یو خط ولیدو چې کوم هغهٔ کپتان جانسن ته لیکلے دے په هغې کښې هغه لیکي :'' چې د ملک حالت ورځ په ورځ خرابیږي''. دا قسم بیکاره خبرې ډیر ورانے پیدا کوي او چونکې اکثر دهراویږي له دې کبله هغه زما هغه ټولې خبرې چې زهٔ د دې خلاف کوم بې اثره کوي. ما ته معلومه ده چې تر کومه پورې د ملک د دې حصې تعلق دے دا ټولې خبرې بالکل دروغ دي او ما سره د دې خبرې د باور کولو دپاره هیڅ وجوهات نشته چې گني دا خبرې ستاسو د علاقې بابت کښې رښتیا دي ځکه چې توخي قوم حسب معمول د خپل عادت مطابق بغاوت کړے دے او یا ځکه چې اختر خان سره یو څو ورانکاري ملگري شوي دي.

لکه څرنگ ما وړومبے ذکر کړے دے په دې ټولو معاملو کښې داسې یوه هم نشته چې هغه خلاف توقع وه او یا دې هغه مونږ بې ارامه کړي مونږ به دا شان وسائل اختیار کړو چې غلجي به زمونږ د تنگولو نه منع کړي. او في الحال دپاره هم دغه هومره خبره ضروري ده. باقي معاملات مونږ په ښهٔ شان سره وخت ته پریښودے شو. دا کوم تحریرات چې د صمد

د تقررۍ برخلاف خفګان ښکاره کوي زما په خیال دا ټول فرضي دي جانباز راوغواړه هغوي دې شپه په شپه ټولـه لار ووهي او د اختر شا ته دې ځان ورسوي بیا دا بدمعاش ونیسه او د هامان په شان ئې د وچت ځاے نه پانسي کړه او د هغې نه پس به غالباً چې بیا هیڅ شوروشر نهٔ کوي. جانباز دې د مالیې ټولولو په وخت کښې بهر دیره وي کۀ ضرورت وي.

ما تا ته وړومبے وئیلي دي چې ما هیچرې د اختر په سر روپۍ نهٔ دي مقرر کړے. او نهٔ زما دا خوښه ده چې مونږ د هغهٔ د قتل دشمن ته دا انګیخت ورکړو چې اختر خان قتل کړه دا خبره علاوه د دې نه چې قابل اعتراض ده غیر ضروري هم ده. ځکه چې د هغهٔ دشمن ته به دا ضرور معلومه وي چې مونږ به د داسې ظالم غدار په لړې کیدو ضرور خوشحالیږو د تیموئي قام په بابت کښې ما تش دومره وئیلي وو چې هغوي دې دې ته مائل کړې شي چې هغوي اختر ونیسي هرکله چې هغه د هغوي په علاقه کښې پناه واخلي او زما دا خیال وۀ چې د هغوي په زړۀ کښې د دې قسم کار برخلاف چې څۀ قدرتي اعتراض پیدا کیږي د هغې د مغلوب کولو دپاره به د روپو د یوې لویې عوضانې اعلان کول ضروري وي.“

مشکله دا وه چې د افغانستان په معاملاتو کښې میکناټن ته د هندوستان د خلقو نمونه په مخکښې پرته وه او دې خیال نهٔ صرف هغه او د هغهٔ قوم په افغانستان کښې تباه کړو بلکې د سدوزو بیخ ئې هم ځان سره د همیش دپاره د افغانستان د سرزمین نه وښکلو. د اختر خان شورش او د درانو بې چیني هغهٔ ته صرف د یو څو مفسدانو کار ښکاریدو. د هغهٔ دا هیچرې یقین نهٔ کیدو چې په پښتنو کښې هم د قومیت جوش شته او لا دا چې هغوي هم د غیر قوم د حکومت لاندې په هیڅ وجه ژوند تیرول نهٔ غواړي مګر په دې خیال کښې هغهٔ ډیره دهوکه وخوړه او د هغهٔ دا ګمان وۀ چې صرف د جانبازو د یوې رسالې په تلو سره به د درانو شورش رفع شي مګر رالنسن هغهٔ ته وئیل چې د باقاعده فوځ نه بغیر د اختر خان نیول او د درانو فرمان بردار کول ناممکن دي.

د جون په اخر کښې اختر خان د ګرشک په مقام باندې سره د خپلو ملګرو چې په شمار کښې قریباً درې زره کسان وو د انګریزانو مقابلې ته تیار شو. د هغهٔ په راوچتیدو سره د درانو په ټول قام کښې د خپل ملک د ازادولو یو جوش او ولوله رادوڅاره شوه. او ورځ په ورځ لوے لوے ټولي د هغهٔ د جنډې لاندې راټولیدل. اخر کار میکناټن د هغهٔ د مقابلې دپاره د باقاعده فوځ د وتلو حکم وکړو. وړ برن چې په انګریزي فوځ کښې یو ډیر قابل افسر وۀ سره د دوؤ پلټنو او د جانبازو د دوؤ دستو او د یوې لویې توپخانې ګرشک طرف ته روان شو. اختر خان د دریاے هلمند په بله غاړه سره د درانو قبائلو پروت وۀ هغهٔ خپل لښکر په شپږو حصو کښې تقسیم کړے وۀ او د هرې یوې حصې ئې یو لوے عالم مشر کړے وۀ. او هر یو ملا له ئې د خپلې حصې دپاره یوه لویه جنډه ورکړې وه او په هره یوه جنډه باندې ئې د کلام

الله دا پاک الفاظ درج وو. " حسبنا الله و نعم الوکیل." ( زمونږ دپاره يو خدای بس دے او هغه د ټولو نه ښهٔ ساتندويه دے.)

وړېرن په دريمه جولايي د هلمند په دې غاړه باندې پړاؤ وکړو. هارټ چې د شاه شجاع د رسالې سالار وهٔ هغهٔ سمدستي په دې لښکر باندې د حملې کولو دپاره د سيند نه پورې وتو خو چونکې نور فوځ هغهٔ پسې پورې نهٔ وتلے نهٔ شو نو هغه راواپس شو. هر کله چې درانو وليدل چې انګريزان د سيند نه نشي راپورې وتلے نو هغوي پخپله قريباً څلور بجې ماښام د وړېرن په فوځ باندې د حملې کولو دپاره د سيند نه پورې وتل شروع کړل او سمدستي ئې جګړه ونښلوله. درانو په ډېرې بهادرۍ جنګ وکړو مګر د توپو په جواب کښې هغوي سره توپې نهٔ وے خو باوجود د دې نه هم هغوي ټوله شپه په انګريزي فوځ باندې خپل خپل چپاوونه جاري وساتل او بيا سحر وختي ئې خپلې لښکرې خورې کړې. په وړېرن کښې دومره زور نهٔ وهٔ چې هغهٔ د اختر خان په لښکر پسې تعاقب کړے وے ځکه چې په ملک کښې چارچاپيره بغاوتونه وو او وړېرن نهٔ پوهيدو چې کوم طرف ته لاړ شم. اخر هغهٔ هم د ګرشک طرف ته پيش قدمي وکړه. او رالنسن ته ئې وليکل چې نهٔ صرف اختر خان بغاوت کړے دے بلکې ټوله علاقه د فيرنګيانو سخته برخلاف ده. او د اولس خلق وسله په لاس د مقابلې دپاره ولاړ دي نو تر څو پورې چې نور امدادي فوځ رانشي زهٔ د درانو شورش فرو کولو نهٔ شم.

د اختر خان نه علاوه اکرم خان يو بل درانے خان وهٔ چې د خپل قام او ملک د خودمختارۍ دپاره د فيرنګيانو او د هغوي د لاس ګوډي يعنې د شاه شجاع ډېر خلاف وهٔ. کپتان ګرفن چې د وړېرن د امداد دپاره راستولے شوے وهٔ ګرشک ته د اګست په مياشت کښې راورسيدو. هغهٔ د اکرم خان د مقابلې دپاره سره د اتو سوؤ سورو، درې نيم سوؤ پيادو او د څلورو توپو مقرر شو.

علاوه د دې باقاعده فوځ نه د جانبازو يوه لويه رساله هم د دې فوځ په مرسته کښې روانه شوه. او اکرم خان سره څهٔ ډېر معمولي لښکر وهٔ. په اوولسم اګست دا انګريزي فوځ ناساپه د هغهٔ په دې ورکوټي لښکر باندې راپريوتو د حملې په وخت کښې ګرفن سره د شاه شجاع زوے شهزاده صفدر جنګ هم سره د خپلې رسالې ملګرے وهٔ اکرم خان يو څو ګينټې ښه په بهادرۍ مقابله وکړه مګر اخر د صفدر جنګ د رسالې په زور د درانو د اولس د خلقو لښکرې خورې شوې. اکرم خان وتښتيدو او فيرنګيانو د هغهٔ ټولې قلاګانې او کورونه وران کړل.

غلجو سره هم د دې اګست په مياشت کښې نورې ډېرې جګړې وشوې مګر د باقاعده فوځ په مقابله کښې د اولس د خلقو هيڅ وس نهٔ چليدو او په هر مقام به ئې شکستونه

خوړل. هر کله چې دا ټولې لښکرې خورې شوې نو د میکناټن زړهٔ بالکل په قلاره شو. او حکومت هند ته ئې په خپلو رپورټونو کښې ولیکل چې ټول ملک د یو سر نه تر بله سره پورې خاموش او د امن نه ډک دے. ګوروّ د غلجو مشر هم ځان په دې ورځو کښې فیرنګیانو ته حواله کړے وهٔ او درانو هم خپله وسله ایښے وه. صرف یو د اکبر خان خطره د هغهٔ په زړهٔ کښې لا پرته وه.

ځکه چې هغه په دې ورځو کښې د خلم په خواوشا کښې ناقلاره اخوا دیخوا د لښکرو په فراهمئ کښې ګرځیدلو. میکناټن هغهٔ ته ولیکل چې تهٔ هم د پلار په شان خپل ځان فیرنګیانو ته حواله کړه او هغوي به تا په ډیر عزت سره هندوستان ته د طور د شاهي نظر بند ولیږي. مګر اکبر خان ته د خپل ملک نه جلاوطني او د فیرنګیانو په غلامئ کښې وسیدل بالکل مرګ ښکاره کیدلو. هغهٔ به خلقو ته وئیل چې د ازادئ مرګ د غلامئ د ژوندون نه ډیر بهتر دے. هغهٔ ته دا معلومه وه چې فیرنګیانو ته ځان حواله کول د خپل ملک د ازادئ نه د همیش دپاره لاس وینځل دي. پس د ذاتي فائدې کوم لالچ او طمع چې میکناټن هغهٔ ته ورکوله هغه هغهٔ د قوم په ننګ و ناموس باندې قربان کړه. او په زړهٔ کښې ئې فیصله وکړه چې یا به دا ملک د غیر قوم د حکومت نه ازاد کړم او یا به په دې کوشش کښې خپل سر کیږدم.

د میکناټن د افغانستان متعلق د امن و سکون رپورټ باندې یو څو ورځې نهٔ وے تیرې شوې چې د ترین او د ډیره وت د ضلعو رپورټونه راغلل چې درانو بیا بغاوت کړے دے او اکرم خان د هغوي مشر د فیرنګیانو د مقامي افسر د اطاعت قبلولو نه انکار کوي. په یوویشتم اګست میکناټن جنرل ایلفنسټن ته بیا ولیکل چې د دې شورش د رفع کولو او د اکرم خان د ګرفتارئ دپاره دې یو لوے فوځ واستولے شي. چنانچه ایلفنسټن حکم وکړو چې د قندهار فوځونه دې په اکرم خان باندې حمله وکړي. پس جنرل ناټ د ستمبر په اوله هفته کښې سره د یو لویه فوځه او د یوې لویې توپخانې او رسالې په خپله دې طرف ته روان شو او د پولیټیکل اختیاراتو د استعمالولو دپاره لفټیننټ ایلیټ دې فوځ سره ملګرے شو. هر کله چې دا دومره عظیم الشان فوځ د ډیره وت په علاقه کښې ورننوتلو نو دراني وارخطا شول او بې ډزه ډوزه د هغوي بیشماره سرداران د ویرې نه زر زر د جنرل ناټ کیمپ ته د اطاعت دپاره راغلل. دا سرداران ټول د حکومت د سلامئ دپاره واستولے شول صرف یو اکرم خان انګریزي کیمپ ته د راتلو نه انکار وکړو او هر څومره چې ایلیټ هغهٔ ته لالچونه او ویرې وښودلے مګر اکرم خان د انګریزانو د حکومت د منلو او د شاه شجاع په خدمت کښې د حاضریدو نه انکار وکړو.

اوس فیرنګیانو په چل ول باندې د هغهٔ د ګرفتارئ تجویز وکړو. چنانچه هغوي د

اکرم خان د کلي يو سړي له رشوت ورکړو او په کوم ځای کښې چې اکرم خان پناه اخستې وه د هغې ځای د لار ښودلو ذمه واري دې سړي په خپل سر واخستېه. چنانچه ايليټ سره د جانبازو د يوې رسالې د اکرم خان ګرفتارئ پسې روان شو. ايليټ د دې مخبر پښې د اس ګېډې سره د دې غرض دپاره وتړلې چې کۀ چرې هغه فيرنګيانو سره څۀ دهوکه کول غواړيٌ نو چې هغه کم نه کم خلاص نۀ شي او سمدستي قتل کړې شي.

اکرم خان دغه وخت په يوه وړه غونډې قلعه کښې ناست وۀ او د تيښتې بنا ئ کوله چې ايليټ د هغۀ د خپل کليوال د بې ايمانئ په سبب راورسيدو او اکرم خان ئ بنديوان د جنرل ناټ کيمپ ته ورسولو. د اکرم خان د ګرفتارئ نه پس دا ټول فوځ قندهار ته واپس راغې. او اکرم خان ئ ځان سره راوستو. ميکناټن د اکرم خان وينو ته د ورومبې نه تږې ناست وۀ هغۀ فوراً د شاه شجاع نه د تيمور شهزاده په نوم باندې د اکرم خان د قتل حکم واخستلو او قندهار ته ئ راوليږلو. د تيمور څۀ مجال وۀ چې د فيرنګيانو د منشا نه ئ لږ مخالفت هم کړې وې. پس اکرم خان سمدستي په توپه کښې والوځولې شو. باقي دراني سرداران چې چا په خپله خوش رضايئ اطاعت قبول کړې وۀ هغوي د لفټيننټ کرافورډ د نګرانئ لاندې په طور د قيديانو کابل ته را روان کړې شو. چنانچه دا قيديان لا د غزني په لاره راروان وو او د هغوي پښې هم د اسونو د ګېډو لاندې تړلې وې چې د غزني په ټوله لاره کښې بغاوت شروع شو او لفټيننټ کرافورډ په ډيره مشکله سره ځان د غزني ښار ته راورسولو. کرافورډ ته دا حکم شوې وۀ چې کۀ چرې د درانو په دې سردارانو کښې چا هم د تيښتې کوشش وکړو نو هغه سمدستي قتل کړه. دا د هغوي په رضا صلاح د اطاعت قبلولو نتيجه وه.

هر کله چې د غزني په خوا کښې په کرافورډ باندې نورو غازيانو حمله وکړه نو هغوي په خطايي په دې غريبانو او بيوسه قيديانو کښې هم يو کس قتل کړو. باقي قيديان د جنګ په هله ګوله کښې ورک شول او په دې طريقه دا بدقسمته قيديان د يو کس نه سوا نور ټول ژوندي خلاص شول. دا د نومبر د جنګ ازادئ ابتدا وه.

د اکتوبر نه تر نومبره پورې د قندهار په علاقه کښې ظاهري طور باندې بالکل امن و امان وۀ او رالنسن پوليټيکل ايجنټ په خپل رپورټ کښې چې د نومبر په ابتدا کښې هغۀ ليکلې وۀ خپل خيالات دا شان درج کړل :

" Affairs more a more tranquil and promising appearance in the Qandahar province than I had ever witnessed since may assumption of the charge of the agency. Akram Khan , the leader of the Derawath rebellion, captured by lieut Elliot, had been executed at their place by his Majesty's orders. Eight of the most influential of his colleagues had been sent by me, according to the orders of the Envoy, under the charge of lieu. Crawford to Kabul; that officer having my written

**instructions to destroy his prisoners in the event of an attempt at rescue. The Hazara and the Balooch tribes had been effectually conciliated; the Duranees of the Northern and Western Districts had been humbled and overawed."**

ترجمه :" په قندهار علاقه کښې صورت حالات زما د چارج اخستو نه هیچرې هم دومره پرامن او ښهٔ نهٔ وو لکه څرنګ چې نن ورځ وو. اکرم خان چې د ډیره وت د بغاوت مشر وهٔ او لفټیننټ ایلیټ ګرفتار کړے وهٔ هغه په دې مقام د اعلیٰ حضرت په حکم باندې قتل شوے وهٔ. د هغهٔ اتهٔ نور ملګري چې د ډیر اثر خاوندان وو ما د میکناټن په حکم د لفټیننټ کرافورډ د نګرانۍ د لاندې کابل ته روان کړي وو او هغهٔ ته مې تحریري هدایات ورکړي وو چې کهٔ چرې چا د هغوي د خلاصې کوشش وکړو نو هغوي سمدستي قتل کړه. هزاره او بلوچ قبائل په ښهٔ شان سره رضا شوي وو او د شمالي او د مغربي اضلاعو درانیان ښهٔ مخلي شوي او عاجزان شوي وو."

د قندهار په علاقه کښې دې ظاهري امن و سکون د فیرنګیانو په زړهٔ کښې دومره اطمینان او بیغمي پیدا کړه چې هغوي دا مناسب وګڼل چې یو بریګیډ فوځ دې هندوستان ته د کرنل میکلارن د لاندې واپس شي ځکه چې د دومره لوے فوځ ساتلو اوس په قندهار کښې د هغوي د خیال مطابق څهٔ ضرورت نهٔ وهٔ. چنانچه دا بریګیډ په اووم نومبر د هندوستان په طرف روان شو مګر هم په دغه ورځ مابنام یو ډیر مصیبتناک خبر قندهار ته راورسیدو. کپتان وډبرن سره د یو سل او دیرشو سړو د جولایۍ په میاشت کښې د قندهار نه کابل ته روان شوے وهٔ. هرکله چې د فوځ دا دسته د غزني نه وروړاندې شوه نو د پښتنو د اولس خلقو په هغوي یوه سخته حمله وکړه وډبرن سمدستي د سید اباد په قلعه کښې پناه واخسته مګر غازیانو یوه ورځ او یوه شپه په ډیرې جانثارۍ په دې قلعه چپاؤونه وکړل او اخر دا قلعه ئې واخسته او وډبرن سره د خپلو سړو قتل شو.

هرکله چې رالنسن ته دا خبر راورسیدو نو هغهٔ جنرل ناټ ته د دې بریګیډ د واپس کیدو سوال وکړو ځکه چې رالنسن ته دا معلومه وه چې وډ برن او د هغهٔ د فوځي دستې تباهي د یو لوے جنګ پیش خیمه ده. یوه هفته پس د میکناټن او د ایلفنسټن خطونه هم راورسیدل چې په کابل کښې د یو لوے بغاوت لمبې وچتې شوي دي. نو د میکلارن بریګیډ دې سمدستي کابل ته د امداد دپاره واستولے شي. د دې خطونو نه علاوه د کرنل پامر د غزني نه او میجر لیچ د قلات غلزي نه خبرونه راواستول چې په چارچاپیره علاقو کښې ټولو اولسي خلقو د موجوده حکومت برخلاف بغاوت شروع کړے دے. په اوولسم نومبر د میکلارن بریګیډ کابل طرف ته روان شو. او چونکې د رالنسن د شهزاده صفدر جنګ چې د شاه شجاع زوے وهٔ په وفادارۍ باندې پوره اطمینان نهٔ وهٔ او هغهٔ دا غوښتل چې په څهٔ شان هغه د قندهار نه وباسم هغه ئې د زمینداور د علاقې نه راوغوښتو او د کپتان هارټ د جانبازو سره د

میکلارن په مرسته کښې کابل ته ولیږلو. د قندهار په علاقه کښې د نومبر په ټوله میاشت کښې چا سر وچت نهٔ کړو مګر د غزني نه متواتر خبرونه راتلل چې د کابل لاره بالکل بنده ده او چارچاپیره په ملک کښې انقلاب شروع دے او هر طرف ته په انګریزي ځوځونو او د هغوي په ملګرو باندې حملې او چپاوونه شروع دي.

دیخوا د میکلارن بریګیډ د یو څو ورځو د مزل نه پس قلات غلزي ته ورسیدو. د قلات غلزي نه چې څهٔ وخت فوځ روان شو او د غزني په طرف ئې دوه پړاوه لار ووهله نو څهٔ لږه شان واوره په لاره باندې پریوته مګر په دویمه ورځ نوره ډیره واوره هم ووریده او د هغهٔ د کمسریټ یو څو خرهٔ مړهٔ شول. په دې میکلارن د خپل بریګیډ یو کمیټي مقرر کړه چې ماته رپورټ راکړئ چې آیا د کمسریټ ځاروي په دې‌واورو کښې کابل ته د رسیدو قابل دي او کهٔ نه؟ دې کمیټي دا رپورټ وکړو چې چونکې ژمے راروان دے او ډیر ځاروي په لاره مړهٔ شوي دي او د نورو ډیرو ځاروو د مرګ ویره ده له دې کبله د کمسریټ د ځاروو دپاره په دې موسم کښې کابل ته ژوندي رسیدل ناممکن دي.

د دې رپورټ په بنا میکلارن قندهار ته د واپس کیدو حکم وکړو چنانچه په اتم دسمبر د هغهٔ بریګیډ واپس قندهار ته روان شو. سرداران کابل د بغاوت د ابتدا نه سردار محمد عطا خان په دې کار باندې مقرر کړے وهٔ چې تهٔ په مغربي افغانستان کښې د فیرنګیانو برخلاف ټوله قوم پرسته طبقه را یو ځاے کړه او انقلاب پیدا کړه. هرکله چې سردار محمد عطا خان د مغربي افغانستان حدودو ته راورسیدو نو د درانو ټول خانان د هغهٔ نه چاپیره راجمع شول او خپل خدمات ئې هغهٔ ته پیش کړل.

دیخوا میجر رالنسن د فیرنګیانو په مشهور اصول یعنې بې اتفاقي پیدا کړه نو بیا حکومت وکړه باندې عمل شروع کړو او د بارکزو او د پوپلزو په منځکښې ئې د قدیمي دشمنۍ د تازه کولو کوششونه راواخستل. چنانچه هغهٔ یواځې پوپلزي خانان او د هغوي د علاقې علماء را یو ځاے کړل او د عهدو او روپو په لالچونو ئې د هغوي نه دا اقرار واخستو چې مونږ به ټول د شاه شجاع او د هغهٔ د مشري زوي تیمور اطاعت کوؤ. او په دې اقرار باندې ئې د دې خانانو او ملیانو دستخطونه واخستل او د هغوي نه ئې یرغمال په قندهار کښې ځان سره کښینولو او بل کار ئې دا وکړو چې مرزا احمد نومے یو نامتو سردار چې په درانو کښې د هغهٔ نه زیاتي قابل او دانشمند دور اندیش او سیاستدان بل څوک نهٔ وهٔ او د قندهار په علاقه کښې د شاه شجاع د طرف نه افسر مالیات مقرر وهٔ هغه شهزاده تیمور سره په طور د هغهٔ د لوے مشیر کار مقرر کړو. د دې نه پس رالنسن د پوپلزو دا ټول خانان د شهزاده تیمور او مرزا احمد سره د یو لک روپو مشرقي قبائلو ته ولیږل چې هغوي د اولس عام خلق د بارکزو او غلجو برخلاف راوچت کړي. او هغه په خپله بنهٔ په اطمینان باندې کښیناستو چې

عـنـقريب به دا ټوله جګړه اوس د بارکزو او سدوزو په منځکښې شروع شي او مونږ به د دې ټول فساد نه خلاص شو.

اګـر چـې رالـنـسـن د خپـل عقل او فکر مطابق يو ډير لوړے سياسي چال وچلولو. او د پښتنو دباهمي خانه جنګۍدپاره ئ ټوله منصوبه په ډير تدبر جوړه کړه مګر سدوزو او پوپلزو قبـائلو ته ډير زر دا معلومه شوه چې د انقلاب په دې تحريک کښې نۀ صرف د کابل بارکزي شامـل دي بـلـکـې ټول پوپلزي هم په اتفاق سره د فيرنګيانو د حکومت برخلاف راپاڅيدلي دي.او چـې دا د ازادۍجـنـګ د دې د پـاره نـۀ دے چـې بـارکـزي دې برسراقتدار شي او کۀ سـدوزي.بلکې دا تـحـريـک د دې دپاره شروع شوے دے چې د فيرنګيانو حکومت د پښتنو د ملک نه لرې شي. چنانچه کومې جرګې چې د دې نه پس د سدوزو سردارانو او د مرزا احمد پـه مـنـځـکښـې وشوې په هغې ټولو کښې د خلقو خيالات ورو ورو هم د فيرنګيانو برخلاف کـيـدل. تـر دې پـورې چې مرزا احمد چې تر دې وخته پورې د انګريزانو ډير اعتباري وۀ هغه هم د هغوي نه واؤړيدو او په مغربي افغانستان کښې د دې قومي تحريک مشر شو.

وړومبے خـو دراني چپ پاتې شو ځکه چې هغوي يو ځل اول هم د فيرنګيانو د لاسه سخت شکست خوړلے وۀ متل دے چې "مار خوړلے د پړي نه هم ويريږي" له دې کبله هغوي د کـابـل د طرف نه د تحريک د کاميابۍ او ناکامۍ په انتظار کښ کښيناستل ولې هرکله چې د دسمبر مياشتې د کابل د ښار نه د کاميابۍ خبرونه راورل نو د درانو قبائلو ټولو په اتفاق سره د بغاوت او د مقابلې نشان وچت کړو.

د ميکلارن د بريګيډ د واپسۍ نه يو څوورځې پس صفدر جنګ هم سره د جانبازو د رسـالـې واپس راغلو. د بغاوت وړومبے عملي کارروائي په قندهار کښې دا شان وشوه چې په ويشتـم دسـمبـر د جانبازو فوځ ته د ګرشک په طرف د روانيدو حکم وشو. د دې فوځ دوه نيم سوه کسان د لفټيننټ ګولډنګ د کمان لاندې وو او يو نيم سل د لفټيننټ ولسن د کمان لانـدې وو. لـفـټيـنـنـټ پټنسن د پوليټيکل معاملاتو افسر دې فوځ سره د ګرشک د چاوڼۍ دپـاره څۀ ميخزين او څۀ خزانه هم روانه شوه. دې فوځ ته دا حکم وۀ چې د نيمې شپې نه دوه ګينټې پس په ډبل مارچ ځان د ارغنداب د کلو نه وباسئ ځکه چې په دې کلو کښې د بغاوت آثار ښکاره شوي وو او بيا ځان شواشو ګرشک ته ورسوئ.

ګـولډنګ په خپل وخت باندې تيار شو مګر د ولسن سپاهيان لا د کوچ دپاره تيار نۀ وو دغـه وخـت ګـولـډنګ او پـټـنسن د ګولډنګ په خيمه کښې ناست وو او چونکې فوځ د مـارچ دپـاره تيـار نـۀ وۀ هـغـوي بيـا دواړه اودۀ شول نيمه ګينټه پس د ګولډنګ د فوځ سړي وښکلو تورو سره د هغۀ خيمې ته راننوتل او په دې دواړو افسرانو ئ د تورو ګوزارونه وکړل. بيـا دا دوه نيم سـوه سـړي سـوارۀ شـول خـزانــه ئ تـالا کړه او پـه اسونو سوارۀ د کيمپ نـه

وتښتیـدل. پـټنسن او ګولډنګ دواړه زخمیان شوي وو لا مړهٔ نهٔ وو پټنسن د هوش سنبالولو نـه پـس راپـاڅیـدو او پـه اس سـور شو. او کیمپ نه وتښتیدو. ګولډنګ پیاده روان شو مګر جـانبـازو لانـدې کـړو. او ټـکـړه ټـکـړه ئ کـړو پـټـنسن هم اخر د دې زخمونو نه د مارچ په میاشت کښې مړ شو.

هـر کـلـه چـې رالنسن د دې واقعې نه خبر شو نو هغهٔ کپتان لیسن سره د یوې رسالې د لـفـټیـنـنـټ ولـسـن امـداد لـه واستولو. د لفټیننټ ولسن جانباز لا هم هغه شان د انګریزانو په مرسته ولاړ وو. دې ټول فوځ د باغي جانبازو په ډیرې تیزۍ سره تعاقب وکړو. او د قندهار نه ئ دولـس میـلـه لـرې رالانـدې کـړل. د جـانبازو ټول فوځ د بغاوت نه وړومبے د فیرنګیانو د مـلازمت په سبب په درانو قبائلو کښې سخت بدنام وهٔ. ځکه چې د فیرنګیانو دپاره هغوي دې قبـائـلو سـره ډیـر جـنګونه کړي وو. دې باغي جانبازو چې څهٔ وخت د انګریزي فوځ د راتلو اوازه واوریده نو د امداد اخستو دپاره هغوي د بارکزو کلو ته ورغلل او هغوي ته ئ ټول حال ښکاره کړو مګر د زوړ خفګان په وجه هغوي د جانبازو په خبره اعتبار ونهٔ کړو اخر دا جانباز یـواځـې د انـګریزي فوځ د مقابلې دپاره راووتل. دغه وخت هغوي سره یو نیم سل کسان وو. مـګـر د چـپـلانـي کـلـي پـه مـقام باندې ئ د لیسن په فوځ باندې په ډیر جوش حمله وکړه. په فـریـقیـنـو کښې یو سخت خونریز جنګ وشو. او د ټوپکونو په ځاے ئ د تورو مقابله د یو بل وکـړه. مـګر د جانبازو فوځ شکست وخوړو. او قریباً دیرش تنه د هغوي نه قتل شول. او باقي کسـان د عـطا محمد خان کیمپ ته وتښتیدل. د دې واقعې نه دوه ورځې پس شهزاده صفدر جنګ هم د قندهار نه وتښتیدو او عطا محمد خان سره شامل شو.

عـطـا مـحـمد خان د جنوری په میاشت کښې خپل کیمپ ډیلي نومے یو ځاے باندې چـې د قـنـدهـار نـه شـلویښـت میـلـه لـرې وهٔ ولګولو او په چارچاپیره علاقه کښې ئ د خپل تـحـریـک د خورولو کوششونه کول. چنانچه ورځ په ورځ د هغهٔ جمعیت زیاتیدلو او د درانو غـازیـانو لښکرې به د هغهٔ قیام ګاه ته راتلے. هغهٔ سره علاوه د شهزاده صفدر جنګ نه اوس د غلجو سرداران سمت خان، میرعالم خان او ګورو هم شامل وو.

میـجر رالـنسـن جنرل ناټ ته ضروري خط ولیکلو چې د عطا محمد خان په کیمپ بـانـدې سـمـدستي حمله کول پکار دي. چې د هغوي روز افزون طاقت او زور خورور شي او کـهٔ چرې اوس دا وخـت حـمـله ونهٔ شوه نو د دې علاقې ټول غیرجانبدار خلق به عطا محمد خان او صفدر جنګ سره شامل شي. جنرل ناټ د میجر رالنسن دا تجویز نامنظور کړو. مګر عـطـا مـحـمد خان دا لویه غلطي وکړه چې په ځاے د دې چې هغهٔ خپل طاقت نور هم مضبوط کـړے وے او پـس د هـغـې نه ئ په قندهار پیش قدمي کړے وے نو هغهٔ سره د صفدر جنګ د ارغـنـداب پـه دره بـانـدې ښکته راروان شو او په دولسمه جنوری د سیند په غاړه د قندهار نه

پنځۀ میله قبلې ته ئ مقام وکړو.

ناټ خو د رالنسن تجویز په دې وجه نامنظور کړے وۀ چې د قندهار د هغې وخت د حالاتو مطابق فوځ په دوؤ حصو کښې تقسیمول او د قندهار نه دومره لرې لیږل ئ خلاف مصلحت وو. اوس چې عطا محمد خان دومره نزدې راغلو نو هغۀ د خدائے نه نور څۀ غوښتل. هغۀ سمدستي پنځۀ نیمې پلټنې د پیادو، یوه لویه رساله او شپاړس توپې د هغۀ مقابلې ته وویستے. عطا محمد خان کښې د دومره عظیم الشان فوځ او د دومره لویې توپخانې د مقابلې طاقت چرته وۀ. اګرچې هغۀ په ډیرې ځوانمردۍ جنګ وکړو مګر د نیمې ګینټې نه پس ئ شکست وخوړو او په یو نزدې کلي کښې ئ پناه واخسته. جنرل ناټ هغۀ پسې دې کلي ته تعاقب وکړو او داسې وحشیانه حمله ئ په دې کلي باندې وکړه چې د هغه کلي ټول سړي، ښځې او بچي ئ قتل کړل. د دې معرکې بابت سر جان کے د خپل تاریخ په دریم جلد صفحه 138دا شان لیکي :

" Atta Mohd attempted to make a stand ; but our troops moved forward---carried the Village by storm----- and slaughtered every man, woman, and child, within its walls."

ترجمه :" عطا محمد بیا د مقابلې کولو کوشش وکړو مګر زمونږ فوځونه ورمخکښې شول او په یوه هله ئ کلے واخستو. او د هغې په دننه ئ هر یو سړے ښځه او بچے قتل کړو."

په ځاے د دې چې د دې قتل عام او فتح اثر د فیرنګیانو په حق کښې څۀ ښۀ شوے وے د دې خونخوارۍ په وجه د درانو ټول قبائل چې څۀ لا تر دې وخته پورې په شش و پنج کښې وو په اتفاق سره په دې قومي جنګ کښې د سر ورکولو دپاره میدان ته راووتل بلکې هغوي عطا محمد خان ډیر ملامت کړو چې تا دومره زر ولې فیرنګیانو سره جګړه شروع کړه. او پکار دا وۀ چې ټول قوم را یوځاے شوے وے او بیا په اتفاق سره په قندهار چپاؤ شوے وے. پس عطا محمد خان بیا د درانو د منظم کولو په کار کښې ولګیدو. دا کار څۀ دومره اسان نۀ وۀ د پښتنو کورنۍ بې اتفاقي، د هغوي ډله بازي، او باهمي قتل مقاتلې په غیر قومونو کښې ضرب المثل دي. لکه د نورو پښتنو د درانو هم هر خان د بل خان برخلاف وۀ. یو کلے د بل کلي حاسد وۀ . د لویو لویو ټپو په خپلو کښې سره ورانه وه. د یو کلي د بیلوبیلو کندو هم په خپله کښې سره جوړه نۀ وه او چې څرنګ نن د پښتنو کور وران دے دغه شان په هغه زمانه کښې هم د قبیلې هر یو مشر د بل مشر په تباهۍ پسې لګیدلے وۀ. او په دې تلوسه کښې پروت وۀ چې څرنګ به خپل عزیز وروړ تربور ذلیل او رسوا کړم.

د داسې مختلفو عناصرو د رایوځاے کولو دپاره د یو داسې قابل هوښیار همدرد مخلص او بې غرضه سړي ضرورت وۀ چې هغوي ئ ټول په دې مشترک قومي تحریک کښې متفق او رایوځاے کړے وے، دا کار مرزا احمد په خپله ذمه واخستو او هغۀ په ډیره

تـنـدي او جـانـفشانـي هنر او حکمت عملي سره په دې کار ګوتې پورې کړې. هغهٔ په ډېرو ښکـلـوښکلو تقريرونو، دليلونو او د غيرتونو په اړولو باندې هغوي پوهه کړل چې دا وخت د هـغـوي د قوم دشمن هغه دے چې چا د هغوي په ملک باندې په زور قبضه کړې ده. او په دې وجه نـهٔ صرف دا چې يو خان لا دوه خانان لا يوه ټپه لا دوه ټپې د دنيا په سترګو کښې سپک او بې عـزتـه ښـکـاري بلکې دا وخت د پښتنو ټول قام د يو بل قام د حکومت او اختيارلاندې دے پس زمونږ وروميے فرض دا دے چې دا مشترک دشمن د خپل ملک نه وباسو او بيا وروستو د خپل وطن پرې جنبې چې څرنګ زمونږ خوښه وي جاري وساتو. د پښتنو قوم لکه چې څـرنګ اوس بې علمه او ناپوهه او بې ټيکاوه دے دغه شان په هغه زمانه کښې هم وهٔ. د مـرزا احـمـد غوندې فصيح او د اخلاص نه ډک تقريرونه د يو څو ګينټو او کله کله د يو څو ورځـو پـورې په هغوي اثر وکړو. او د هغوي نه به خپلې کورنۍ ورانې او دشمنۍ هيرې شوې او د خپـل ټول قام مشترک سپکاوے به ور په وړاندې شو. مګر چې څهٔ موده به تيره شوه نو د مـرزا احـمـد د تـقرير اثر به هم ورو ورو زړيدلو او په وړو وړو خبرو به سر دوباره د هغوي په مـنـځکښې زاړهٔ عـنادونه او باهمي حسدونه تازه شول او کله به يو خان سره د خپله لښکر د کيمپ نه نـاراض روان شـو اوکـلـه بـه بـل. او بيا به دا ټول خانان مرزا احمد په ډير صبر او حوصلې سره رضا کول او واپس به ئې کيمپ ته راوستل.

د دغې مشـکـل نـه عـلاوه دې غازيانو ته د روپو هم سخت ضرورت وهٔ چونکې مرزا احـمـد يـو ډيـر تـجربه کار افسر ماليات وهٔ هغهٔ په ډير هنر د خلقو نه قبل از وقت ماليه ټولول شروع کړل. او هر چا له ئې د بې باقۍ رسيدونه ورکړل بيا هغهٔ هغه ټول سرداران چې د چا په زړونـو کـښـې يـو بل سره سخت حسدونه وو بيلو بيلو اضلاعو ته وليږل. چې هغوي لښکرې راټولې کړي او د خلقو نه ماليې او چندې جمع کړي.

د پـوپـلـزو او سـدوزو قبائلو کښې هغهٔ د دې خبرې ډيره لويه او مضبوطه پروپيګنډه وکـړه چې دا قـومـي انـقـلاب د شـاه شـجـاع په رضا شروع شوے دے. او په دې طريقه کوم شکونه چې د پوپلزو او د سدوزو په زړونو کښې د بارکزو د اقتدار حاصلولو متعلق فيرنګيانو پيـدا کـړي وو هـغـه ئې پـه ډيره ښه طريقه لرې کړل. دغه شان د شلمې جنورۍ نه د فرورۍ د مياشتې تـر اخـره پـورې مـرزا احـمـد د درانو په دې قبائلو کښې د تنظيم او اتفاق پيدا کولو کـوشـشـونـه وکـړل. ميجر رالنسن د قندهار انګريزي پوليټيکل ايجنټ د پښتنو د حالت او د مرزا احمد د دې کوششونو بابت دا شان ليکي :

" Mirza Ahmad alone could have so long preserved union among the discordant elements of which this camp was composed, he alone could have managed, by the most careful revenue arrangements to have supported the concourse which was assembled round the standard of Safdar Jang; he alone ,

perhaps, could have prevented Durranees from risking an action in which they were to be defeated ; his measures throughout have been most skilful and well sustained. The chiefs were, in the first place, sent to recruit in the different Districts where their influence chiefly prevailed; revenue was raised in the usual form for the support of the troops in anticipation of the coming harvest............ ."

په دې اثنا کښې جنرل ناټ په قندهار کښې د پنځو میاشتو خوراک د فوځ دپاره راجمع کړو او د ښار استحکامات ئې ډیر مضبوط کړل.

د دې نه پس د هغهٔ دا اراده وه چې په دولسمه فروری به زهٔ د صفدر جنګ او مرزا احمد دوئ په کیمپ باندې حمله کوم او د حملې نه به وړومبے د ښار د ابادی نه وسله ټولوم. مګر په دې تاریخ باندې دومره واوره او ځله پریوته چې دا حمله د هغهٔ نه پاتې شوه. په دې کښې د هغهٔ د کمسریټ د ځارو او واښهٔ او ګیاه بالکل خلاصه شوه. ځکه چې مرزا احمد دا کوشش کولو چې فیرنګیانو ته خرڅ خوراک د هر طرف نه بند شي. د دې نه علاوه هغهٔ سره روپۍ هم بالکل ختمې شوې. او اوس هغوي په دې طمع کښې کښیناستل چې د هغوي د خطونو په جواب کښې به عنقریب د سندهـ په لاره د هندوستان نه خزانه او خرڅ خوراک راورسي. مګر په یویشتمه فروری هغوي له د میجر پوټنګر او د جنرل ایلفنسټن د لاس احکام راورسیدل چې تاسو سمدستي قندهار او قلات غلزي خالي کړئ. او د هندوستان په طرف روان شئ. دا حکم مونږ دلته بجنسهٖ په انګریزئ کښې درج کوؤ:

Sir,

It having been found necessary to conclude an arrangement, founded on that of the late Sir William H. Macnaughten, for the evacuation of Afghanistan by our troops, we have the honour to request that you will intimate to the officer commanding at Qandahar our wish that the troops now at that place and at Kelat-i-Ghalzay, together with the British authorities and troops within your jurisdiction, should return to India at the earliest convenient season. Nawab Jabbar Khan, who is the bearer of this letter, will render you all the assistance in his power. He has been appointed Governor of Qandahar on the part of the existing Government.

E. Pottinger & W. K. Elphinston.

P S.— If you require two or three days to make your preparations, you must not remain in the city, but proceed to your cantonment. Whatever you are obliged to leave behind you will make over to the Nawab Jabbar Khan."

ترجمه :" صاحبه چونکې دا خبره ضروري وګڼلے شوه چې د متوفيٰ سر ولیم ایچ میکناټن د عهدنامې په بنا باندې دې یوه بله عهدنامه د دې غرض دپاره وشي چې د افغانستان نه دې زمونږ فوځونه وځي له دې کبله مونږ تاسو ته دا درخواست کوؤ چې تهٔ به د قندهار سالار ته دا خواهش ښکاره کړې چې کوم کوم فوځونه دا وخت په قندهار ،قلات غلزے کښې دي سره د

انګریزي حکامو او هغه فوځونو چې ستاسو د اختیار لاندې دي زر نه زر په ښهٔ موسم کښې د هندوستان په طرف واپس شي. نواب جبار خان چې د دې خط تاسو ته دروړونکے دے هغه به چې څومره د هغهٔ نه کیدے شي تاسو سره امداد وکړي هغه د موجوده حکومت د طرف نه د قندهار ګورنر مقرر شوے دے.

اې پوټنګر
ډبیلو کے ایلفنسټن

(د خط نه پس لیکلے شوے)

"کهٔ چرې تاسو ته د تیارئ کولو دپاره د دوؤ دریو ورځو ضرورت وي نو تاسو ته په ښار کښې پاتې کیدل پکار نهٔ دي. بلکې خپلې چاونۍ له ځئ. هر څیز چې تاسو ئې په پریښودو مجبور یئ هغه به نواب جبار خان ته حواله کړئ."

دې حکم سره سم زباني خبرونه هم د فیرنګیانو چاونۍ ته او هم د درانو کیمپ ته راورسیدل چې شاه شجاع او د هغهٔ قبیله سدوزے او بارکزي په خپله کښې متفق شول او شاه شجاع ئې بادشاه تسلیم کړو. اوس مرزا احمد د جنرل ایلفنسټن او د پوټنګر د دې برني حکم نه او د سدوزو او بارکزو د یو کیدو نه پوره پوره فائده وچتول غوښتل. او دا کوشش ئې کولو چې بلاوجه زهٔ فیرنګیانو سره په جنګ کښې ونهٔ نښلم.

چنانچه هغهٔ د صفدر جنګ او نورو درانو سردارانو د طرف نه میجر رالنسن ته یو خط ولیکلو چې "د روز اول نه د انګریزانو دا وینا ده چې مونږ د افغانستان ملک ته صرف د شاه شجاع د مرستې دپاره راغلي یو او زمونږ خپل ځان له هیڅ غرض او مطلب په افغانستان باندې د قبضې ساتلو نشته. اوس چونکې شاه شجاع د افغانستان ټولو قبائلو په اتفاق سره بادشاه تسلیم کړو او اوس هغهٔ ته د انګریزي امداد څهٔ ضرورت نشته له دې کبله دا مناسب دي چې انګریزان زمونږ ملک پریږدي او کهٔ چرې انګریزي فوځ زمونږ د دې سوال مطابق د دې ملک په پریښودو رضا نهٔ وي نو مونږ د دې ذمه واري اخلو چې هغوي به ترکوټتې پورې مونږ په حفاظت سره ورسوؤ."

مرزا احمد د دې خط سره خپله یوه جدا چیټۍ هم رالنسن ته ولیکله چې مناسب به دا وي چې تاسو دا ملک په امن و امان پریږدئ. د دې خطونو نه علاوه په څلیریشتمه فروري یو خط د شاه شجاع د طرف نه هم د شهزاده تیمور په نوم باندې راورسیدو چې د هغې مضمون دا شان وهٔ:

"غالباً تهٔ به د کابل د تحریک نه خبر شوے یئ تا ته دې معلومه وي چې دا مقابله د اسلام او د کفر ترمنځه ده اوس چونکې ټوله معامله فیصله شوه او ټولو پښتنو زما اطاعت قبول کړو او زهٔ ئې خپل بادشاه تسلیم کړم. له دې کبله دا ضروري ده چې تهٔ د خپل حکومت

د ټول سرکاري کار نه ما خبروے وغیره وغیره."

هر کله چې دا خط رالنسن تیمور ته وښودلو نو شهزاده تیمور ووئیل چې دا خط جعلي دے مګر رالنسن د بادشاه د خط او د دستخط نه واقف وۀ هغه فوراً پوهه شو چې دا جعلي نۀ دے بلکې اصلي دے.

کوم خط چې درانو سردارانو رالنسن ته لیکلے وۀ په هغې کښې هغوې د هغۀ نه د خپل خط جواب هم غوښتے وۀ چنانچه رالنسن په دې باره کښې جنرل ناټ سره جرګه وکړه او دواړو په صلاح او مشوره دا فیصله وکړه چې مونږ نۀ د میجر پوټنګر،نۀ جنرل ایلفنسټن او نۀ د شاه شجاع حکم منلو ته تیار یو. حالانکې دا ښکاره خبره وه چې جنرل ناټ د جنرل ایلفنسټن او رالنسن د پوټنګر ماتحت وۀ او قانوناً د هغوې دپاره لازم ووچې د هغوې د حکم تعمیل ئې کړے وے پس رالنسن درانو سردارنو ته په جواب کښې ولیکل چې" دا وخت شاه شجاع د نورو خلقو د اثراو د دباو لاندې دے او هر څۀ چې هغۀ کړې دي هغۀ د جبر لاندې کړې دي او غالباً چې هغۀ تر اوسه پورې زمونږ امداد بدستور غواړي نو تر څو پورې چې مونږ بادشاه سره نورې خبرې اترې نۀ وي کړے مونږ افغانستان پریښودلو ته تیار نۀ یو."

رالنسن اوس بیا د بارکزو او د سدوزو تر منځه د بې اتفاقۍ د اچولو سعي شروع کړه او تر ډیره حده پورې هغۀ په دې کار کښې کامیابي حاصله کړه هر څومره ورځې چې تیریدې هغه هومره جهګړې او د کورنۍ خفګانونه په پښتنو کښې پیدا کیدل او په څۀ نا څۀ خبرو به د یو بل نه مروریدل.هر کله چې رالنسن په دې پوهه شه چې د درانو په کیمپ کښې قسما قسم پرے جنبے او نفاقونه پیدا شول نو هغۀ جنرل ناټ ته سوال وکړو چې اوس وخت راغے چې د درانو په کیمپ باندې دې یوه سخته حمله وشي. جنرل ناټ دې تجویز سره اتفاق وکړو. وړومبے خو هغۀ د قندهار ټوله ابادي د ښار نه بهر وویسته او په دې کارروایۍ کښې څومره سختي چې کیدے شوه هغه هومره هغۀ وکړه او صرف یو څو سوداګران او یو څو هندوان ئې پریښودل او قریباً یو زر کوره ئې په سخته یخنۍ او څله کښې د ښځو او بچواو د زرو خلقو وویستل.

د دې نه پس په اووم مارچ باندې ناټ سره د خپل فوځ او د شپاړسو توپو په مرزا احمد باندې د حملې کولو په غرض روان شو. په مرزا احمد کښې دومره طاقت نۀ وو چې هغۀ په میدان جنګ کښې د جنرل ناټ د فوځونو او د توپخانے مقابله کړې وے پس هغۀ یو ډیر د هنر چال چلیدو کوشش وکړو او که چرې هغه کامیاب شوے وے نو انګریزي فوځ به د قندهار د ښار نه بهر پاتے شوے وے او درانو به په ښار باندې قبضه کړې وه.

څۀ وخت چې جنرل ناټ په غازیانو پیش قدمي شروع کړه نو مرزا احمد خپلې لښکرې ورو ورو بې جنګه دا شان باقاعده او په ښۀ شان سره وروستو کولے چې د ناټ دا

یقین راغے چې دراني غازیان مقابلې ته ځان نهٔ نیسي او پسپا کیږي. ناټ هم دغه شان په هغوي باندې ور ورانډې کیدو او دراني د هغهٔ نه بدستور وروستو کیدل تر دې پورې چې په نهم تاریخ باندې د غازیانو څهٔ حصه په چارچاپیره غرونو باندې ودریده او دا شان ئې ښکاره کړه چې ګنې مونږ د دې ځاے نه د ناټ فوځونو سره د جنګ دپاره تیار یو نو څهٔ وخت چې انګریزي فوځ لږ نور مخکښې شو نو په هغوي باندې ئې د ټوپکو باړونه وچلول او دغه شان په په دواړو لښکرو کښې ټوله ورځ څهٔ معمولي شان جنګ وشو مګر یوه لویه جګړه ونهٔ شوه.
په دې منځکښې مرزا احمد دا خبره مشهوره کړه چې دراني لښکرې به په انګریزي فوځ د شپې چپاؤ کوي او دې سره سم هغهٔ د دې غرونو نه د خپل لښکر یوه لویه حصه راکوزه کړه او بیا د ارغنداب نه په یو لرې ځاے راپورې وتلو او بالکل په چپه چپیا د قندهار ښار ته ئې ځان راورسولو. دیخوا انګریزي فوځ په دې ویره کښې وهٔ چې د شپې به د مرزا احمد د طرف نه په انګریزي کیمپ حمله کیږي او د هغې دپاره ئې تجویزونه او سامان تیارولو. د مرزا احمد د فوځ یوه لږه حصه د ناټ د فوځ د توجه ځان ته د راښکلو دپاره په هغې غرونو باندې پاتې شوله او مسلسل ډزې ئې په انګریزي کیمپ باندې جاري وساتلے.
د لسم تاریخ په سحر سبا څهٔ غازیان زوږ قندهار ته ورسیدل او په هغې باندې ئې قبضه وکړه. رالنسن چې دا واوریدل نو ډیر وارخطا شو او ناټ ته ئې پیغام ولیږلو چې غازیانو ستا د فوځ په شا ځان قندهار ته راورسه لو او د هغوي د نقل و حرکت نه دا شان معلومیږي چې هغوي په ښار باندې حمله کوي.

په دې منځکښې غازیان په ډیر شمار کښې د قندهار په خواوشا کښې راجمع شول په دې د رالنسن دا یقین راغے چې بیګا له به په قندهار چپاؤ کیږي. قریباً د نمرپریوتو په وخت کښې په لسم تاریخ مرزا احمد او صفدر جنګ هم دې ځاے ته راورسیدل او عین په انګریزي چاونۍ کښې ئې ډیره ولګوله. شپه سخته توره تیارهٔ وه رالنسن د ښار ټولې دروازې بندې کړې اومضبوط پکتونه او توپې ئې د هغوي د حفاظت دپاره ولګولے. غازیانو په اتهٔ بجې د شپې د حملې تیارۍ وکړې او اراده ئې وکړه چې د هراتي دروازې ته به اور ورته کوؤ چې په ښار ورننوځو. د دې دپاره هغوي دا شان چل وکړو چې یو زمیندار سړې ته ئې چې د کلو وسیدونکے معلومیدو یو خر سره د لوې بار د لرګو حواله کړو. دې زمیندار خپل خر سره د لرګو د باره د پل نه هراتي دروازې ته راپورې ویستو او اواز ئې وکړو چې دروازه راته لرې کړئ ما خرڅ له لرګي ښار ته راوړي دي. په دې دروازه باندې د لفټیننټ کوک پهره وه او هغه دا وخت په دې کوشش کښې لګیا وهٔ چې د غازیانو نقل و حرکت معلوم کړم د هغهٔ په حکم د پهرې سپاهیانو دې زمیندار ته ووئیل چې دروازه مونږ هیڅا ته هم دا وخت نهٔ لرې کوؤ. په دې هغه زمیندار ځان ډیر خفه کړو او ډیر وګوریدو او د څهٔ بدو ردو او وینا نه پس ئې

خپل د لرګو بار په زمکه راوویشتو او وې وئیل چې دا بار دې هم دلته پروت وي زۀ ئ واپس نۀ شم ورپے بیا سحر به ئ ښار ته دننه کړم. په دې کښې دا زمیندار د خندق د پل نه سره د خپل خر پورې وتو او سمدستي غیب شو. دغه لرګي وو چې غازیانو په دې هنر هراتي دروازې ته ورسول. لږ ساعت پس د غازیانو یو ټولے ورغلو او دې لرګو ئ تیل واچول او اور ئ ورته کړو. په لږ ساعت کښې لویې لویې لمبې د هراتي دروازې نه چاپیره شوې او د هغې په رڼا کښې انګریزي پکټونو ته معلومه شوه چې چارچاپیره غازیان په وسله پُر د حملې دپاره تیار ولاړ دي خو چې دروازې اور واخستو نو غازیانو لویې نعرې ووهلے او د جوش یوه حمله ئ په دروازه وکړه.

دې خوا نه انګریزي محافظ فوځ په هغوي باندې د توپو ګوله باري شروع کړه او پکټونو هم په هغوي ډزې شروع کړې. غازیان باوجود د دې ګوله باری تبرونو باندې د هراتي دروازې تختې ټکړه ټکړه کړې او د دروازې سرو شوو اوسپنو ته ئ لاسونه ورواچول او ټوله دروازه ئ راوغورځوله.

دا وخت یوه ډیره خونریزه جګړه شروع شوه ځکه چې څۀ وخت د ښار نور انګریزي محافظ فوځ په دې خبر شو چې غازیان په هراتي دروازه خپل ټول زور غورځولے دے نو هغوي ټول دې ځاے ته راجمع شول او ځان سره ئ نورې توپې هم راوړې. غازیانو ته لوے تکلیف دا وۀ چې د دروازې د راپریوتو نه پس چې کومه لار د ښار دننه د ننوتو وه هغه ډیره تنګه وه او په هغې لار کښې هم انګریزي فوځ د لارې بندولو دپاره د غلې ډکې ډکې بوجۍ دلۍ کړې. دا وخت قندهار د غازیانو د لاسه په سخته خطره کښې وۀ مګر د ښار محافظ انګریزي فوځ هم په پوره بهادرۍ او حوصلې د هغوي مقابله وکړه. تر نیمې شپې پورې غازیانو د شکارپور او د کابلۍ دروازو د سوزولو کوششونه هم وکړل او څۀ لرګي ئ د هغې په خوا کښې هم وغورځول مګر د محافظ فوځ ګوله باري او ډزې دا شان مهلکې وے چې په دې کوشش کښې هم هغوي کامیاب نۀ شول. د نیمې شپې نه پس معلومه شوه چې غازیانو په یو طرف هم لا د زړۀ د خوږیدو کامیابي نۀ ده حاصله کړې پس مرزا احمد سمدستي یوه جنګي جرګه راغونډه کړه او دې جرګې دا فیصله وکړه چې چونکې د دروازو ټول محافظ فوځونه رابیدار شوي دي او د غازیانو سرې هم ډیر ضائع شوي دي له دې کبله اوس واپس کیدل پکار دي د غازیانو په دې شپه د ناکامیابۍ صرف یوه وجه وه او هغه دا وه چې هغوي سره توپې نۀ وے. دې کښې شک نشته چې د مرزا احمد چال د فوځي نقطۀ نګاه نه ډیر اعلیٰ او د کامیابۍ وۀ. هغه د جنرل ناټ په غلولو کښې بالکل کامیاب شوے وۀ او کۀ چرې هغۀ سره د جنرل ناټ د سامان او د فوځ په نیمه سامان او سرې وے نو هغه به د قندهار په اخستو کښې کامیاب شوے وۀ هرکله چې جنرل ناټ د دې ټولې قصې نه خبر شو نو سمدستي ښار

ته واپس شو.

د درانو په لښکر کښې د دې ناکامیابۍ ډیر خراب اثر پیدا شو د پښتنو دا خوئ دے چې څۀ وخت هغوي په خپل یو تحریک کښې د دشمن د لاسه یو شکست لا دوه شکسته وخوري نو په هغوي کښې حوصله او ثابت قدمي پاتې نۀ شي. او یو سخت ردعمل په هغوي کښې رادوڅاره شي د وړدو جګړو او شکستونو نه باوجود ثابت قدمي ښکاره کول د هغوي قومي خصلت نۀ دے. په لږه کامیابۍ باندې ډیره خوشحالي او په یو دوؤ شکستونو خوړو باندې د سخت خفګان او بې همتۍ ښکاره کول د هغوي یو لوے عیب دے. او هم دغه وجه ده چې باوجود د هغوي د بهادرۍ او زړورتیا نه هغوي د ژوندي قامو په صف کښې مخې ته نۀ شي راتلے.

په دې موقع هم د دې معمولي شکست په سبب د درانو خانانو په منځکښې بې اتفاقي پیدا شوے وے او په یو بل باندې ئ قسماقسم الزامونه لګول شروع کړل. تر دې پورې چې په مرزا احمد باندې هم هغوي ملامته وئیله. چې ستا په وجه زمونږ ډیر خلق تباه شول حالانکې هغوي ټولو له دا پکار وو چې بغیر د قربانۍ او بغیر د سعي نه هیڅ لوے کار په دنیا کښې سر ته نۀ شي رسیدے.

میجر رالنسن چې د دې نه خبر شو نو هغۀ نور هم د درانو د جنبې خوړولو او د هغوي د لښکرو د تس نس کولودپاره هغوي پسې ګوتې ووهلے او په دې طریقه د مارچ تر اخره پورې د درانو د کیمپ نه ډیر خلق لاړل. مګر د غازیانو په جمعیت کښې مرزا احمد یو دا شان بنیادم وۀ چې نۀ خو د هغۀ په همت په دې شکست باندې کم شو او نۀ هغۀ خپل ځان د خپلو ملګرو په بدرد وئیلو خفه کړو. د قامولۍ جوش او جذبه د هغۀ په زړۀ کښې دا شان مستقل طور ناسته وه چې هغۀ په دې لاره کښې د هر قسم مصیبت او مشکل برداشت کولو ته تیار وۀ. خو د انګریزانو په افغانستان کښې نور پاتې کیدل هغۀ په هیڅ وجه نشو زغملے.

یو څو ورځې پس چې د خلقو د زړۀ نه د لسم تاریخ اثر محوه شو نو هغۀ بیا د درانو خانانو د رایو ځاے کولو کوششونه راواخستل او په خپله ایمانداری او اخلاص باندې دا شان کامیاب شو چې په دریو هفتو کښې دننه دننه هغۀ نورې لښکرې را یو ځاے کړې او ډیر خانان د هغۀ د جنډې لاندې راجمع شول دا ځل خانانو یو تر بله په قرآن مجید باندې قسمونه وخوړل چې نۀ به بیا په یو بل ملامته غورځوو او نۀ به بیا په خپلو کښې بې اتفاقه کیږو بلکې ټول به په یک جهتۍ په فیرنګیانو یوه بله حمله کوؤ.

په څلیریشتم مارچ هغوي د قندهار نه قریباً پنځۀ میله لرې راجمع شو په پنځویشتم تاریخ کرنل وائمر سره د یو بریګیډ فوځ د ارغنداب سیند غاړې ته څۀ اوښان څرولو دپاره بوتلي وو د بابا ولي په خوا کښې د درانولښکر د ارغنداب نه راپورې وتو او د کرنل وائمر په

فوځ ئ حمله وکړه. کرنل وائمر فوراً د امداد دپاره قندهار ته خبر وکړو درانو دا ځل په غیر معمولي جوش د صلو خان د سالارئ لاندې د وائمر په رساله باندې حمله وکړه او ډیر کسان ئ ترینه مړهٔ کړل. جنرل ناټ چې څهٔ وخت د ښار په دننه د توپو درزهار واوریدو نو سمدستي د وائمر د امداد دپاره سره د توپخانې، پلټنو او رسالې راووتلو.

څهٔ وخت چې درانو د ناټ د توپو او د فوځ د راتلو اواز واؤریدلو نو هغوي جنګ بس کړو او ورو ورو د فوځ نه ئ ځان راوښکلو. په دې جنګ کښې د فیرنګیانو نه لفټیننټ چیمبرلین او ټریورس زخمیان شول او کهٔ چرې ناټ د کرنل وائمر امداد ته نهٔ وے رارسیدلے نو د کرنل وائمر بریګیډ ته به نور ډیر سخت نقصان هم پیښ شوے وهٔ.

اګرچې د دې معرکو نه پس د غازیانو او د فیرنګیانو په منځکښې څهٔ بله لویه جګړه ونهٔ شوه مګر غازیانو بدستور خپل جدوجهد جاري وساتلو او جنرل ناټ او میجر رالنسن ته ئ د یوې ورځې قرارے هم نهٔ وهٔ ورکړے. دغه شان په قلات غلزي کښې هم غازیانو په چارچاپیره علاقه کښې د انګریزي فوځ د باربردارۍ او د خوراک په ځناورو حملې کولے تر دې پورې چې نهٔ خو په قندهار او نهٔ په قلات غلزي کښې انګریزان سوائ د جنګ نه او سوائ د فوځي کاروایۍ نه بل وخت د ښار نه بهر د یوې ورځې دپاره هم وتے شو. هر څومره ځله چې غازیانو د انګریزي فوځ د لاسه نقصانات وچت کړل هم هغه هومره ځل بیا هغوي د فیرنګیانو مقابلې ته راووتل. دغه شان د 1842ء د ابتدا نه د اوړي تر اخره پورې د قندهار د ښار او د قلات غلزي د قلعه د دیوالونو نه بهر د انګریزانو د حکومت نام و نشان هم نهٔ وهٔ.

چونکې د قلات غلزي انګریزي فوځ د قندهار د فوځ د امداد نه کافي لرې پروت وهٔ له دې کبله جنرل ناټ په نولسم مئ کرنل وائمر د قندهار نه واستولو چې قلات غلزي خالي کړئ. او د هغه ځاے فوځ قندهار ته واپس راولئ. په یویشتم مئ کرنل وائمر قلات غلزي ته ورسیدو او انګریزي فوځ ئ د قلعه نه راوویستلو. کرنل وائمر د قلات غلزي ټول استحکامات وران کړل او قندهار ته رااروان شو په دغه ورځ هم د غلجو او انګریزي فوځ سخته جګړه وشوه. لا کرنل وائمر قندهار ته نهٔ وهٔ رارسیدلے چې اختر خان د زمینداور خان بیا څهٔ خلق راجمع کړل او قندهار طرف ته راکوز شو.

مرزا احمد او عطا محمد خان هم خپل خپل جمعیت سره د هغهٔ امداد ته راورسیدل. او په نهٔ ویشتم مئ د ارغنداب په خوا کښې پریوتل. او د انګریزي فوځ څهٔ ښاروي ئ لوټ کړل. غازیان د بابا ولي خوا ته ورو ورو راکوز شول او په دې انتظار کښې کښیناستل چې د انګریزي فوځ په دستو باندې به چې کوم وخت هغوي د قلعه نه راوځي حملې کوؤ او د هغوي نه به مال بیایو. مګر جنرل ناټ کرنل ستېریسي د څلورو توپو او دوؤ پلټنو سره د هغوي د منتشر کولو دپاره ولیږلو. مګر دا فوځ د هغوي په شړلو کښې ناکامیاب شو. نو جنرل ناټ د

فوځ يوه بله دسته او اتۀ توپې د هغۀ امداد ته واستولے او په خپله هم د جنګ موقعې ته روان شو. د دواړو لښکرو په منځکښې پنځۀ شپږ ګینټې جګړه وشوه د درانو مطلب دا وۀ چې انګریزي فوځ ناقلاره او تنګ کړو او د هغوي اوښان او ګډان تالا کړو. چنانچه هغوي د دومره لوي فوځ په راتلو ورو ورو د بابا ولي درې ته ورننه وتل.

په دې جنګ کښې د اکرم خان بي بي په ډیرې بهادرۍ د غازیانو یو لوے ټولے په میدان جنګ کښې د انګریزي فوځ برخلاف وجنګولو. لوستونکو ته به یاد وي چې اکرم خان د ډیره وت د بغاوت مشر وۀ او جنرل ناټ د یو لویې فوځ کشۍ نه پس هغه په چل هنر ګرفتار کړے وۀ او بیا ئ د میکناټن او د شاه شجاع په حکم د ستمبر 1841ء په میاشت کښې په توپه الوځولے وۀ. د هغۀ د مرګ نه پس د هغۀ بي بي په خپله د پردې نه راووته او بیشانه ډیر قبائل ئ د ځان سره شامل کړل او په کوم کار کښې چې د هغې خاوند ځان قرباني کړے وۀ هغه ئ په لاس کښې واخستو. چنانچه په دې موقع هغه په خپله په جنګ کښې د غازیانو وړومبو صفونو سره د خپل خاوند په اس سوره او د هغۀ یو لوے نشان په لاس میدان جنګ ته راووتله او په ډیره زړورتیا ئ خپلې لښکرې د انګریزانو په فوځ ورواچولے.

لفتیننټ ریتېري د دې متعلق خپل چشم دید شهادت دا شان بیانوي :

" As the enemy drew near, a white object was observed in the centre of their front ranks, which seemed the rallying point for the Ghazees, chieftains, Moollahs, kettle-drums, and standard bearers. This proved to be no less a personage than the heroic widow of the slaughtered Akram Khan. Throwing aside her timid nature with her " Boorkha " She had left the sacred privacy of the Zenana for the foremost rank in the battle-field, had bestrode her husband's charger, and with his standard in her hand assembled the tribes."

ترجمه :" څۀ وخت چې دشمن رانزدې شو نو د هغوي د مخکینو صفونو په مرکز کښې یو سپین څیز په نظر راغلو چې د هغې نه به غازیان، سرداران، ملیان د ډولونو خاوندان او نشانچیان چارچاپیره راجمع کیدل. معلومه شوه چې دا خو د مقتول اکرم خان بهادره کونډه ښځه ده. هغې خپل د بزدلۍ طبیعت یو طرف ته غورځولے وۀ برقعه ئ لرې کړې وه او د زنانوؤ د پردې نه راوتلې وه او د جنګ په میدان کښې په وړاندیني صف کښې د خپل خاوند په اس سوره ولاړه وه او د خپل خاوند جنډه ئ په لاس کښې نیولے وه ټول قبائل ئ راجمع کړي وو."

جنرل ناټ او میجر رالنسن د بغاوت د ابتدا نه خپل حکومت ته د خزانې او د میخزین د رالیږلو دپاره ډیر ضروري پیغامونه استولي وو او د خوراک د سامان دپاره ئ هم لیکلي وو چنانچه حکومت هند بریګیډیر جنرل انګلینډ د فروری په اخر کښې سره د مطلوبه خزانې او میخزین دادر ته واستولو او بیا د هغه ځاے نه هغۀ ته حکم وشو چې د درۀ بولان په لاره کوټې

ته ځان ورسوه. په شپاړسم مارچ انګلینډ کوئټې ته راورسیدو. او د لسو ورځو د انتظار نه پس په شپږویشتم مارچ باندې هغه سره د شلورو لکو روپو او د څۀ میخزین او د فوځ یوې مضبوطې دستې سره چې په هغې کښې توپخانه هم وه د پشین په دره وردننه شو.

په اتۀ ویشتم تاریخ باندې سحروختې هغه د هغې درې خلې ته وررسیدو چې کوم د هیکلزي کلي ته تلې ده. په دغه ځاے کښې هغه د نور فوځ په انتظار کښې کښیناستو چې کوم د درۀ بولان په لاره د هغۀ امداد ته راروان وۀ. د څۀ انتظار نه پس هغه ورو ورو د هیکلزي کلي طرف ته ور وړاندې شو. په دغه مقام محمد صادق خان د درانو د طرف نه د هغۀ مقابلې ته د هیکلزي په غونډو باندې سره د خپلو لښکرو ناست وۀ. انګلینډ چې د محمد صادق خان د لښکرو نه خبر شو نو خپل فوځ ئ ودرولو او په خپله ئ د غازیانو د کیمپ معائنه وکړه. قریباً پنځلس منټه پس هغه خپل فوځ له واپس راغلو او حکم ئ وکړو چې په غازیانو دې حمله وشي. د ګس طرف په غرونو باندې توپخانې ګوله باري شروع کړه او څۀ فوځ د ښي طرف په غرونو باندې په غازیانو باندې د حملې کولو په غرض وروختو. په دې باندې محمد صادق خان د لښکر سړي د خپلومورچو نه راووتل او دا شان په جوش سره ئ د انګلینډ په فوځ حمله وکړه چې کوم فوځ په غرۀ باندې ختلے وۀ هغه ئ په شا ورغوځولو. کپتان مَے په ځاے قتل شو او یو میجر سخت زخمي شو او د انګریزي فوځ د پنځو سوۀ سړو نه یو سل سړي قتل او زخمیان شول.

محمد صادق خان په خپله د انګریزي فوځ د حملې په وخت کښې د ډزو په شروع کیدو د مورچې نه راووتو او د یو ساعت دپاره ئ د غرۀ د سر دپاسه په ډیرې بهادرۍ په اس سور د وښکلو تورو جنګ وکړو او زخمي شو.

انګلینډ د خپل فوځ په دې شکست خوړلو ډیر ویرې واخستو او بیا په شتاب سره د پاتې شوي فوځ کوئټې ته راواپس شو. او د هغه ځاے نه ئ جنرل ناټ ته خط ولیکلو چې ماله امداد راواستوه ځکه چې زما دپاره په موجوده طاقت د درې نه وتل ناممکن دي. د هیکلزي د شکست نه پس جنرل انګلینډ دا شان ویریدو چې په کوئټه کښې هغۀ د ځان نه چارچاپیره خندقونه وکنستل.

جنرل ناټ چې د جنرل انګلینډ د دې ناکامۍ نه خبر شو نو ډیر خفه شو ځکه چې هغۀ ته د روپو د میخزین د خرڅ خوراک د سامان او د بیمارانو د دارو سخت ضرورت وۀ. جنرل ناټ له دې کبله بیا سمدستي یو ضروري خط جنرل انګلینډ ته ولیکلو چې تۀ بیا قندهار ته راروان شه. د دې خط په رسیدو سره انګلینډ مجبوراً د هیکلزي د شکست نه یوه میاشت پس یعنې په شپږویشتم اپریل د کوئټې نه روان شو. او په اتویشتم هیکلزي ته ورسیدو دا ځل انګلینډ په ډیر ترتیب او انتظام خپل فوځونه د هیکلزي په غونډو باندې وروخیژول او د یو

زبردست جنګ نه پس د دې کلي په اخستو کښې کامیاب شو.

د قندهار د طرف نه هم کرنل وائمر ناساپه سره د فوځ د یوې زبردستې دستې د انګلینډ د راوستو دپاره د خوجک په دره کښې راښکاره شو په دیرشم اپریل د انګلینډ بریګیډ خوجک ته ورسیدو او بیا دا دواړه فوځونه په لسمه مئ قندهار ته ورسیدل. د فیرنګیانو دا شان بې نقصانه قندهار ته د رسیدلو لویه وجه دا وه چې د درانو په لویو لویو مشرانو یعنې په صلو خان او په محمد صادق خان کښې ورانه پیدا شوه او د دې وراني په سبب نورو خانانو هم مقابله پریښوده او خپلو خپلو کلو ته لاړل.

هرکله چې د فیرنګیانو طاقت د جنرل انګلینډ په رارسیدو نور هم زیات شو نو د درانو خانانو ځان له په زړهٔ کښې هیبت پیدا شو صلو خان پټ په پټه فیرنګیانو سره د جدا راضي نامې او سمجهوتې خبرې شروع کړې. صفدر جنګ هم چې د خپل پلار د مرګ نه خبر شو نو هغهٔ رالنسن ته سوال جواب ولیږلو چې زهٔ بیا انګریزي کیمپ ته راتلل غواړم. چنانچه په نولسم جون 1842ء هغه قندهار ته واپس لاړو. صرف مرزا احمد او عطا محمد خان هم هغه شان د پښتنو په راغونډولو کښې لاس پښې وهل. تر دې وخته پورې مرزا احمد د خلقو نه د مالیې په جمع کولو د خپلو لښکرو دپاره د خرڅ خوراک روپی پیدا کړې وې. ولې اوس ناټ رالنسن ته دا تجویز پیش کړو چې خلقو ته دې د یو اعلان په ذریعه وویلے شي چې مرزا احمد له مالیه مهٔ ورکوئ چنانچه په دې اعلان باندې د مرزا احمد د روپو د جمع کولو دا ذریعه هم بنده شوه.

بیا جنرل ناټ رالنسن ته دا تجویز پیش کړو چې یو بل اعلان دې د دې مضمون شائع کړې شي چې هر چا عطا محمد خان او مرزا احمد ګرفتار فیرنګیانو ته حواله کړل نو هغهٔ له به پنځهٔ زره روپی انعام ورکړې شي. مګر رالنسن د دې تجویز مخالفت وکړو او ناټ ته ئې ولیکل چې کهٔ چرې مونږ دا شان اعلان وکړو او دا دواړه سړې ګرفتار شول او بیا مونږ هغوي قتل کړل نو بیا به پښتانهٔ هم زمونږ افسران دا شان ګرفتاروي او د هغوي په بدل کښې به ئې قتلوي. اخر کار ناټ د خپل تجویز نه واپس شو.

## باب

هرکله چې د قندهار د علاقې هر قسم بغاوت جنرل ناټ او میجر رالنسن فرو کړو او د 1842ء په اوړي کښې د جنرل پالک فوځونه (۱) د انګریزي فوځونو د شکست د انتقام

(۱) د جنرل پالک د فوځونو په هندوستان کښې تیاریدل او بیا د هغوي په افغانستان باندې پیش قدمي کول مخکښې په یو مستقل باب کښې بنهٔ په تفصیل سره بیان شوي دي. په دې باب کښې هسې مجمل طور سره د هغهٔ د فوځونو د کارنامو ذکر شوے دے او دا ځکه چې د تاریخ د واقعاتو سلسله ماته نشي.

اخستو دپاره افغانستان ته راورسیدل نو لارډ ایلنبرو چې د هندوستان نوے ګورنر جنرل وۀ جنرل ناټ ته حکم راواستولو چې څلور پلټنې او توپخانې شکارپور ته راواستوه. او پنځو پلټنو سره کابل ته د جنرل پالک فوځ سره د امداد دپاره شامل شه. چنانچه په نهم د اګست ناټ کابل طرف ته روان شو او په اووم د اګست جنرل انګلینډ سره د څلورو پلټنو د بلوچ رسالې د بدرګې په حفاظت کښې شکارپور طرف ته رارخصت شو.

شهزاده تیمور ګورنر قندهار هم جنرل ناټ سره د قندهار نه راووتو او جنرل انګلینډ سره هندوستان ته واپس شو. د هغۀ په ځاے د هغۀ کشرے ورور صفدر جنګ په قندهار باندې قابض شو. په لاره باندې په دیرشم تاریخ د جنرل ناټ د فوځونو مقابله د غلجو یو لوي لښکر سره د ګوهاني په مقام باندې وشوه مګر غلجو شکست وخوړو. او جنرل ناټ د غزني ښار چې د هغې نه د انګریزي فوځ په آمد باندې ټوله ابادي تښتیدلے وه لوټې لوټې کړو په اوولسم د ستمبر جنرل ناټ کابل ته د جنرل پالک نه دوه ورځې وروستو راورسیدو.

د جنرل ناټ او د جنرل پالک فوځونه تر څۀ مودې پورې خو د کابل د ښار نه بهر په کیمپ کښې پراتۀ وو مګر په نهم اکتوبر د انګریزي فوځ یوه حصه د سر رچمنډ شیکسپیر د کمان لاندې دننه ښار ته ننوتله. د کابل د ښار ابادي د انګریزي فوځ په آمد باندې د وړومبے نه تښتیدلے وه. د دې دپاره دا دسته بې مقابلې په ښار وردننه شوه. او د انګریزي قوم د نوم او رعب د قائمولو دپاره هغۀ د ښار د تباهۍ، د بربادۍ او د ورانولو کار شروع کړو. د سر رچمنډ شیکسپیر په حکم باندې په یولسم اکتوبر د کابل د ښار د چارسو په خوا کښې چې څۀ لوے لوے عمارتونه لکه د علي مراد خان عمارت او نور لوي لوي عمارتونه وو هغه وران کړے شو. د دې نه پس د بالاحصار او د قزلباشو د کندې نه سوا نور ټول مکانات او عمارتونه هم وران کړې شو. او څۀ هندوان او تاجر پیشه خلق چې چا د بغاوت په ایام کښې د فیرنګیانو ډیر امداد کړے وۀ او د انګریزي فوځ نه د ښیګړې وچتولو په طمع باندې نورې ابادۍ سره نۀ وو تښتیدلي د هغوي ټولو کورونه او مال دولت هم لوټ کړې شو.

د دې نه وړومبے د فوځ یو بریګیډ د جنرل میکسیکل لاندې د استالیف د تباه کولو دپاره لیږلے شوے وۀ اګر چې د استالیف خلقو په دې بغاوت کښې هیڅ حصه نۀ وه اخستې مګر د دې ښار لویه ګناه دا وه چې هغه د چاریکار او د کابل په منځکښې پروت وۀ. د تحریک ازادۍ په دوران کښې د چاریکار خلقو د انګریزي فوځ یوه ګوره پلټن نست و نابود کړې وه. نۀ چې د استالیف باشنده ګانو. مګر چونکې د جنرل پالک او د جنرل ناټ فوځونو ته د وائسراے هند دا حکم وۀ چې د ژمي د رارسیدو نه وړومبے افغانستان د انګریزي فوځونو نه خالي کړئ له دې کبله جنرل میکسیکل سره دومره وخت نۀ وۀ چې هغه چاریکار ته رسیدلے وے. او هغوي له ئې سزا ورکړے وے. نو د دې دپاره مهذب جنرل میکسیکل د

استالیف بې ګناه خلقو له د سزا ورکولو فیصله وکړه.

د یو معمولي مقابلې نه پس انګریزي فوځونه د استالیف په ښکلي ښار کښې ورننوتل او هر سړے چې هغوي لـه پـه لاس ورغـے نـو هغه ئ قتل کړو تر دې چې کوم خلق په جنګ کښې زخمیان شوي وو هغه ئ هم ژوندي پرې نښودل. او د مړو او د زخمیانو جامو ته ئ اوروننه ورتـه کـړل. پـس د دې نـه هـر ځـومـره ښـځـې چې د دې فوځ په لاس ورغلے هغه ئ وشرمولے او بې عزته ئ کړې. بیا ئ ټول ښار لوټې لوټې کړو او ابادي ته ئ اور ورته کړو. د دې متعلق د یو فرانسیسي نامه نګار بیان چې کوم هغهٔ په اتمه جنوری 1843ء په یوه رساله کښې چې د هغې نوم " جنرل ډس ډیټس " دے شائع کړے دے هغه د کتو قابل دے :

" Istalif, says the letter of an English officer. "is a pretty little town of fifteen thousand inhabitants, against whom we had nothing to say unles that their town stood half-way between Kabul and Charikar, where one of our Gurkha Reginents (irregular cavalry) was destroyed the year before by the Afghans. As then, they were pressed for time and could not push on to Charikar, Istalif was punished. A bridge under the orders of General M'caskill, entered it early in September, and after trifling engagement proceeded to put to the sword every one who had not succeeded in making his escape. The Sepoy Soldiers, in the excess of their inimitable cruelty , set fire to the cotton clothing of their victims and thus burned the dead and dying, which would according to their Superstitious notions, called down a curse on the descendants of those whose remains were thus disposed of without the honour of sepulchre. After the slaughter six hundred women remained in hands of the victor, who set them at liberty. Were they respected, as had been the European Ladies who fell into the power of the Afghans after the disaster at Kabul the winter before? It does not seem that the soldiers saw their prisoners taken from them with which satisfaction............

After being regularly pilled Istalif was given to the flames, and the brigade of General M'caskill returned to Kabul where another tragedy was to be performed.

The work of destruction there was accomplished with a refinement of systematic barbarity and cunning which it is difficult to believe."

هـر کـلـه چې مـونـږ د هـغـې شریف سـلـوک مـقابله چې کوم د پښتنو سردارانو د فیـرنـګیـانو ښـځـو قیـدیـانـو سره کړے وهٔ هغې سلوک سره وکړو چې د کوم د فیرنګیانو د استـالیف تـورسـرو سـره وکـړو نـو هـر بنیادم له به د مغربي تهذیب په دې علمبردارانو باندې افسوس ورشي.

د کابل د تباه کولو نه پس انګریزي فوځ ګندمک ته راواپس شو او په اتلسم اکتوبر هغـه مقام ته راورسیدو چې په کومه لاره به هغوي تلل. نو ټول کلي قصبې او د هغوي فصلونه بـه ئ تباه کول. او نوره ځومره تباهي به چې ترینه کیدے شوه نو په چارچاپیره علاقه کښې به

ئ کوله. هم په دې طریقه دا فوځونه واپس جلال اباد ته څه په یویشتم او څه په څلیریشتم اکتوبر راورسیدل. په پنځویشتم اکتوبر دې فوځ ټول جلال اباد ته اور ورته کړو. اود فصیل استحکامات ئ والوځول. د دې نه پس دا فوځ واپس هندوستان ته روان شو په واپسی کښې اګر چې د جنرل پالک فوځ ته چې د ټولو نه وړاندې وۀ څۀ خاص نقصان ونۀ رسیدو مګر د جنرل ناټ او د جنرل میکسیکل فوځونو ته د غلجو او افریدو د لاسه جاني او مالي ډیر نقصان پیښ شو.

هر کله چې د جنرل پالک فوځونه د 1842ء په مني کښې کابل ته راورسیدل نو هغوي د عامو پښتنو د همدردی حاصلولو په خاطر فتح جنګ د شاه شجاع زوے بیا په تخت باندې کښېنولو او د نظام الدوله په ځاے ئ غلام محمد خان پوپلزے د هغۀ وزیر کړو. دا کار فیرنګیانو د دې دپاره کړے وۀ چې د هغۀ په نوم باندې هغوي د خپلې منشا کارونه په ملک کښې کول غوښتل.

فتح جنګ تر هغه پورې په افغانستان باندې برائ نام بادشاهي وکړه تر کومه پورې چې انګریزي فوځونه په کابل کښې وو مګر څۀ وخت چې فیرنګیان د کابل نه واپس شول نو فتح جنګ هم سره د خپل ترۀ شاه زمان انګریزي فوځ سره روان شو او د افغانستان تاج و تخت ئ شهزاده شاه پور چې د شاه شجاع د ټولو نه کشر زوے وۀ پریښودو.

په دې مقام باندې دا وئیل ضروري دي چې د شاه شجاع د ټولو زامنو ورکوټوالے او ځواني په لدهیانه کښې تیر شوي وو. په لدهیانه کښې د هغوي د نورو هندوستانیانو په شان د غلامی او رعیت په حیثیت او د فیرنګیانو پنشن خوارۀ وو. د ډیر عمر نه د هغوي نه د حکومت جذبه ورکه شوې وه. او کوم سړے چې همیش د بل په ډاډ او د بل په اسره د محتاجی ژوند تیروي په هغۀ کښې خپل ځان له د لار ایستو او د یو خودمختار طریقۀ ګار تجویز کولو قابلیت پاتې نۀ شي. د انقلاب په زمانه کښې د یو نوي حکومت د قائمولو په لار کښې چې کوم جاني خطرات پیښیږي د هغې دپاره د یو داسې سړي ضرورت وي چې هغۀ په یو ازاد قوم کښې او په ازاد ګردونواح کښې پیدا شوے وي او د ورکوټوالي نه د ازادی او د خودمختاری خیالاتو د هغۀ په دل و دماغ باندې اثر کړے وي.

د شاه شجاع خپل د ورکوټوالي او د ځوانی ټول عمر په خپل قوم کښې د ازادی په هوا کښې تیر شوے وۀ. اګر چې د پرله پسې شکستونو په وجه هغۀ په پوخ عمر کښې بیا فیرنګیانو سره شړونکے شو. په هغۀ کښې د خپل ملک او قبیلو د رواج مطابق د پښتنو غوندې کلک او زړور قوم باندې د حکومت کولو قابلیت لا پاتې وۀ. او کۀ چرې فیرنګیانو هغه خپلې رضا ته پرېښے وے او د افغانستان نه د دوست محمد خان او د اکبر خان د وتو نه پس فیرنګیان هم واپس هندوستان ته تللے وے نو دا یقیني خبره وه چې هغۀ به دسدوزو د

کور حکومت بیا په افغانستان کښې قائم کړے وۀ. او د فیرنگیانو چې کوم اصلي غرض مد نظر وۀ یعنې دا چې د افغانستان خارجي تعلقات دې د فیرنگیانو زیر نگراني وي هغه به هم سر ته رسیدلے وۀ ولې فیرنگیانو د ملک گیرۍ په حرص کښې د افغانستان غټه نوړۍ په خلۀ کښې واچوله چې بیا ئې تیرولے نۀ شوه او اخر په دې مجبور شول چې هغه بیا د خلې نه وغورځوي ولې د شاه شجاع په زامنو کښې دومره قابلیت هرگز موجود نۀ وۀ چې د پښتنو غونډې جنگجو او زیږ قوم باندې هغوي د انقلاب په دوران کښې حکومت کړے وے. د هغوي په زړونو کښې د ورکوټوالي نه د انگریزانو رعب داب او جاه و جلال دا شان ناست وۀ چې د هغوي د زړورتیا، د جرأت او د همت طاقتونه ئې بالکل معطل کړي وو. پس هر کله چې انگریزي فوځ د افغانستان د سرحد نه پورې وتو نو اکبر خان د ترکستان نه واپس سره د یو لوے لښکره راغے او شاه پور له ئې شکست ورکړو او هغه سره د شاه شجاع د ټول خاندان لدهیانې ته د فیرنگیانو سیوري له راوتښتیدو.

د جلال اباد علاقه حکومت هند سکهانو له د ورکولو کوشش وکړو ځکه چې هغوي په خپله خو د افغانستان په یوه حصه هم د قبضې ساتلو قابل نۀ وو. نو دا ملک ئې هغوي ته پیش کړو ولې د سکهانو کوم بریگیډ چې جنرل پالک سره په امداد کښې تلے وۀ هغوي په جلال اباد کښې پاتې کیدل منظور نۀ کړل.

د دې نه پس بیا هغوي دا علاقه گلاب سنگهـ والئ جمو ته پیش کړه. مگر د ډنډارو د دې جالې نه هغۀ هم انکار وکړو اگرچې د جنرل پالک او د جنرل ناټ فوځونه د پښتنو قبائلو د ویرې او د افغانستان د ژمي د تکلیفونو د خوف نه زر زر راوتښتیدل. مگر لارډ ایلنبرو او د هغۀ کمانډر انچیف د هندوستان د راجگانو نه د خپل شکست د اثر لرې کولو په خاطر او په هغوي باندې او په عام هندوستاني رعایا باندې د انگریزي رعب اچولو دپاره او د خپل جاه و جلال د نمائش په غرض یو عظیم الشان دربار د فیروزپور په مقام باندې د جنرل ناټ، جنرل پالک او د جنرل سیل د فوځونو د استقبال دپاره تیار کړو. دې دربار ته گورنر جنرل د هندوستان لوے لوے راجگان او مها راجگان او د ریاستونو مالکان راوغوښتل. مها راجه پنجاب ته هم هغۀ دعوت ورکړو مگر هغۀ پخپله د راتلو نه ځان معذور کړو او خپل زوے ئې راواستولو.

وائي چې فیروزپور کښې د دې دربار د کولو غرض هم په سکهانو باندې رعب اچول وو. په یو لوے میدان کښې ډیرې شانداري او نمائشي د فتح دروازې جوړې کړې شوې د ټولو نه وړومبے د جنرل سیل فوځ په اوولسم ستمبر په یو لوے فوځي جاه و جلال او په فاخرانه قدم باندې د فیروزپور د کشتو په پل باندې پورې وتلو د هغۀ نه پس د جنرل پالک او د جنرل ناټ فوځونه په نولسم او درویشتم دسمبر راپورې وتل.

د جنرل سیل د استقبال دپاده دوه نیم سوه هاتیان په ډیر شاندار لباس کښې د لارې نه دواړه طرف ته ولاړ وو. دې هاتیانو ته د ډیرې مودې نه دا چل ښودلے شوے وۀ چې هر کله یوه خاص اشاره وشي نو دا هاتیان به د جنرل سیل په آمد باندې په خرټمونو سلام کوي او دا شان اواز بـه د خـرټـمـونـو نـه وباسي چې د هغې نه دا شان معلومه شي لکه چې هغوي جنرل سیل ته پـخیـر راغـلـے وائي. ولې څۀ وخت چې جنرل سیل د هاتیانو دې قطار له راورسیدلو نو کۀ هر څومره په هغوي باندې وس وکړو ولې نۀ خو هاتیانو سلام وکړو او نۀ ئې د خرټمونو نه د پخیر راغلے اواز وښکلو.

جنـرل ناټ سره د هغۀ په مخکښې د سومنات مندر هغه فرضي دروازې وے چې کوم مـحـمـود غـزنـوي پـه خپـلـه حملـه کښې غزني تـه وړے وے. د دې دوارزې د راوړلو نـه د فیـرنګیانو یوه مدعا د هندوستان د راجګانو مشکورول وو. چې ګنې هغوي اتۀ سوه کاله پس د هـنـدوسـتـان د دې بې عـزتـۍ چې محمود غزنوي د هغوي د مندر نه دروازې وړے وے بدل واخستو او هـغـه دروازې ئې واپـس راوړې. او بـلـه مـدعـا ئې دا وه چې د انګریزي فوځ د افغـانستان نه راوتل د شکست خوړلي فوځ په شان ونۀ ګڼلے شي بلکې د یو فاتح فوځ په شان وګڼلے شي څکه چې هغوي هندوستان له د هغوي یو ډیر مقدس او زوړ یادګار څیز د ښنتنو نه په زور واپس راوړو.

مـګـر پـه ځاے د دې چې د لارډ ایلنبرو په دې دربار باندې په هندوستان کښې لا په پـنجاب کښې د چا په زړۀ باندې د انګریزانو رعب پروتے وے هغوي ټولو په دې نمائش او په دې ظـاهـري جـاه و جلال ښکاره کولو پورې ټوقې اومسخرې وکړې څکه چې د کوم غرض دپاره ښنتنـو د فیرنګیانو برخلاف بغاوت کړے وۀ په هغې کښې ښنتانۀ کامیاب شول هغوي خپله او د ملک ازادي حاصله کړه او ټول ملک ئې د غیر قوم نه صفا کړو. د هغوي فوځونه، تـوپـخـانـې او فـوځـي وقـار ئې پـه خـاورو کښې یو ځـاے کـړل او کوم شکستونه چې هغوي فیـرنـګـیـانـو تـه ورکـړي وو هـغـې په مشرق کښې د فیرنګیانو په تاریخ کښې نظیر نۀ لرلو. د هـنـدوستان ټولو خلقو ته معلومه وه چې کومې دروازې جنرل ناټ خان سره د غزني نه راوړې وے هـغـه د سـومـنـات دروازې نـۀ وے. بـلـکـې فـرضي وے. بله دا چې کۀ محمود غزنوي د سومنات دروازې وړے وے نو فیرنګیانو خو د هندوانو نه د هغوي ټول ملک او ټول مندرونه لانـدې کړي وو. نو د لرګو د دروازو په واپسی باندې د هندوانو نه د غلامۍ او د محکومیت بـدنـما داغ نشو لرې کیدے. غرض دا چې هرچند لارډ ایلنبرو د دې دربار په نمائشي تماشو سـره د انـګـریـزانو د طاقت سیکه د هندوستانیانو په زړۀ باندې کښېنول غوښتل ولې نۀ خو په دې د خلقو خلې بندې شوې او نۀ انګریزي عزت او وقار هغۀ وګټلے شو.

د دې دربار نه پس لارډ ایلنبرو دوست محمد خان او د هغۀ ټول خپل خپلوان چې د

دې جنګ د ابتدا نه تر اخره پورې فیرنګیانو قید هندوستان ته بوتلي وو ازاد کړل او په نولسم دسمبر 1842ء ئ د کپتان نکلسن په همراهیت کښې شکارپور ته راورسول. په شلم دسمبر هغه لاهور ته راغلو. او مهاراجه شیر سنګهـ چې د رنجیت سنګهـ د مرګ نه پس د هغهٔ په ځاے د پنجاب حکمران شوے وهٔ د هغهٔ ډیر شاندار استقبال وکړو. هغه په لاهور کښې وهٔ چې هغهٔ ته خبر راورسیدو چې په شاهپور باندې د فتح حاصلولو نه پس د کابل په تاج و تخت باندې د محمد اکبر خان او د هغهٔ د ترونو د زامنو ترمنځه خانه جنګي په زور و شور سره جاري ده. شجاع الدوله چې د شاه شجاع قاتل وهٔ او د زمان خان زوے وهٔ هغهٔ او شمس الدین د هغهٔ بل تربور بیا د زمان خان زړه خوره وره جنبه یو ځاے کړه او اکبر خان سره ئ جنګونه اغاز کړي وو.

دغه وخت د شجاع الدوله جنبه غالبه شوې وه او اکبر خان درې اویا ورځې د هغوي د لاسه قلعه بند پاتې شوے وهٔ. څهٔ وخت چې دوست محمد خان د دې حال نه خبر شو نو هغهٔ د خپل ځان نه وړاندې سمدستي محمد افضل خان ، محمد اکرم خان، محمد عظیم خان، او غلام حیدر خان خپل زامن د محمد اکبر خان د امداد دپاره واستول. دا څلور واړه وروڼه شواوشو په ډیر شتاب سره کابل ته رارون شو. او په دریو شپو کښې د لاهور نه کابل ته راورسیدل. محمد اکبر خان سره صرف د دوؤ ورځو خوراک په قلعه کښې پاتې شوے وهٔ چې د هغهٔ د ورونو آمد هغه د تباهي نه بچ کړو.

کابل ته په رارسیدو سره د سردارانو یوه لویه ډله د هغوي د استقبال دپاره راووتله او هغوي سره ملګرے شوه. د څهٔ لږې مودې د مقابلې نه پس د شجاع الدوله جنبه خوره شوه او محمد اکبر خان دوئ پوره غلبه حاصله کړه. په دې‌منځکښې دوست محمد خان په خپله هم راورسیدو. د دریو کالو قید فیرنګ د هغهٔ هردلعزیزي په قوم کښې لس چنده زیاته کړې وه او په هر یوه قبیله کښې د هغهٔ درجه اوس د یو قومي رهنما وه. چنانچه ټول قوم بالاتفاق هغه بیا خپل امیر تسلیم کړو او ټولې خانه جنګې ختمې شوې.

هرکله چې فیرنګیان د قندهار نه ووتل نو هغوي د هغه ځاے حکومت صفدر جنګ ته وسپارلو او سردار محمد قلي خان چې د وزیر فتح خان زوے وهٔ هغه ئ د هغهٔ وزیر کړو. په دې طریقه هغوي دا غوښتل چې باوجود د افغانستان نه د وتلو د فیرنګیانو څهٔ نه څهٔ اثر دې ضرور په دې ملک کښې وي. هم د دغې اصولو د لاندې ئ جلال اباد هم سکهانو ته حواله کول غوښتل . صفدر جنګ 1842ء د تحریک ازادی د جنګ په ابتدا کښې خو غازیانو سره شامل شوے وهٔ مګر څهٔ وخت چې شجاع الدوله د هغهٔ پلار قتل کړو نو هغه بیا د فیرنګیانو سره ملګرے شو. او د هغوي دپاره ئ غازیانو سره څو څو جنګونه وکړل. د انګریزانو دا خیال وهٔ چې چونکې د قندهار د حکومت واګې مونږ یو سدوزو او یو محمدزي

تـه حـوالـه کـړې پـه دې سبب به د دې ځای حکومت مستقل طور د دې دواړو په لاس کښې پـاتې شي او په دې شان به دوئ دواړه زمونږ زیر اثر وي. مگر لا پوره څلور میاشتې هم نۀ وې تیـرې شـوې چې کوندل خان د ایران نه راغے او د هلمند په غاړه دیره شو. په دې مقام سردار اختـر خـان، سـرفـراز خـان، او شاه پسند خان او نور د فیرنگیانو مخالف سرداران هغۀ سره یو ځای شول او په قندهار ئ حمله وکړه. د کوندل خان په رارسیدو سره محمد قلي خان خو د خپـل ترۀ طرف ته راواوړیدو مگر صفدر جنگ د موزسنگسار په مقام باندې چې د قندهار نه اتـویشـت میـلـه قبـلـې تـه دے د کـوندل خان مقابله وکړه مگر چونکې ټول قام د انگریزانو د تـعـلـقـاتو په سبب د صفدر جنگ نه خلاف وۀ نو په وړومبے حمله کښې د هغۀ نیم فوځ خو د کوندل خان طرف ته راواوړیدو او باقي نیم ئ شکست وخوړو.

کـوندل خان فوراً په قندهار باندې قبضه وکړه او عام خلقو د هغۀ ډیر شاندار استقبال وکړو. د شکست خوړو نه پس صفدر جنگ په ډیر تکلیف اومشکله شکارپور ته راوتښتیدو او د هـغـه ځـاے نـه لـدهیـانې ته خپلو وروڼو سره شامل شو. د موز سنگسار د جنگ نه پس د انگریزانو د اثر اخري نښه د افغانستان نه ورکه شوه.

دویم جلد ختم شو



# اول باب

**د دوست محمد خان او محمد اکبر خان په سیاسي نظریاتو کښې فرق، دوست محمد باندې د انګریزانو د حکومت رُعب او فیرنګیانو ته غاړه نهٔ کښېښودل، د محمد اکبر خان فیرنګیانو سره اټک پوله کول، د کوندل خان هم د اکبر خان مخالفت کول، د کوندل خان سازشونه، د هندو حکیم د زهرو د ګولو دلاسه د اکبر خان مرګ، محمد شاه خان او د غلجو بغاوت، غلام حیدر خان د جلال آباد ګورنر، د غلجو بغاوت او د غلام حیدر خان سپه سالاري، د پیښور په علاقه د دوست محمد خان قبضه، د سکهانو امداد او د فیرنګیانو حفاظت نهٔ کول او د پیښور علاقه د دوست محمد د لاسه دوباره وتل.**

د دوست محمد خان د قید په ایام کښې انګریزي حکومت په هغهٔ باندې د خپل فوځي او مالي طاقت او د انتظامي جاه و جلال د رعب اچولو دپاره او د هغهٔ په زړهٔ کښې د انګریزانو د لوے والي یو مستقل اثر پیدا کولو په غرض هغهٔ ته په کلکته کښې خپلې ټولې جنګي او صنعتي کارخانې، جنګي سمندري جهازونه، اسلحه خانې، فوځي پریډونه، توپخانې وښودل. هر کله چې هغهٔ د هندوستان انګریزي عدالتونه، محکمهٔ بلدیات، بارک ماسټري او دفترونه د پولیس انتظام او د امن و امان واقعات او حالات ولیدل نو د هغهٔ په زړهٔ کښې رښتیا د فیرنګیانو د قوم یو لوے رعب، هیبت او خوف کښېناستو. او د خپل قام د خلقو نه ئ یو ګونه په زړهٔ کښې حقارت پیدا شو. تراوسه پورې د فیرنګیانو پولیټیکل ایجنټان په دې پالیسی باندې کاربند دي او د خودمختار علاقو نه چې کومې د هغوي د اثرد لاندې وي د هغه ځاے لوے لوے والیان ریاست، ملکان او خانان ښکته ملکونو ته بیائي چې په هغوي باندې د خپل حکومت د زور، طاقت او د څهٔ انتظام رعب او دبدبه کښېنوي. هغوي د خپلو فوځونو د پریډونو تماشې ته، د توپو او د ټوپکو او د کارتوسونو جوړولو کارخانې ته بیائي. او د دې غرض دا وي چې د هغوي په زړونو کښې د فیرنګیانو دومره ویره کښېني چې بیا هغوي د مقابلې او د مخالفت خیال هم په زړهٔ کښې را نهٔ ولي. څهٔ وخت چې دوست محمد خان کابل ته واپس راغلو نو هغهٔ به د خپل قوم د مشرانو په مخکښې هم کله دا شان خبرې وکړې چې د هغې نه به دا معلومیده چې هغهٔ ته د خپل قوم تهذیب، استوګنه او اخلاق د فیرنګیانو په مقابله کښې ډیر لاندې ښکاري. هغهٔ به په دې سلسله کښې د فیرنګیانو د طریقهٔ زندګی ښهٔ او د خپل قام د ټولو عادتونو بد وئیل. ورو ورو د افغانستان په ټولو خودمختار قبائلو کښې دا خیال پیدا شو چې د دوست محمد خان په زړهٔ کښې د هغهٔ د قید په سبب د فیرنګیانو رعب ناست دے او ځکه هغه په هره موقع د هغوي مدح وائي مګر د دې په مقابله کښې چونکې دې

# اول باب

**د دوست محمد خان او محمد اکبر خان په سياسي نظرياتو کښې فرق، دوست محمد باندې د انګريزانو د حکومت رُعب او فيرنګيانو ته غاړه نۀ کښېښودل، د محمد اکبر خان فيرنګيانو سره اټک پوله کول، د کوندل خان هم د اکبر خان مخالفت کول، د کوندل خان سازشونه، د هندو حکيم د زهرو د ګولو دلاسه د اکبر خان مرګ، محمد شاه خان او د غلجو بغاوت، غلام حيدر خان د جلال آباد ګورنر، د غلجو بغاوت او د غلام حيدر خان سپه سالاري، د پيښور په علاقه د دوست محمد خان قبضه، د سکهانو امداد او د فيرنګيانو حفاظت نۀ کول او د پيښور علاقه د دوست محمد د لاسه دوباره وتل.**

د دوست محمد خان د قيد په ايام کښې انګريزي حکومت په هغۀ باندې د خپل فوځي او مالي طاقت او د انتظامي جاه و جلال د رعب اچولو دپاره او د هغۀ په زړۀ کښې د انګريزانو د لوے والي يو مستقل اثر پيدا کولو په غرض هغۀ ته په کلکته کښې خپلې ټولې جنګي او صنعتي کارخانې، جنګي سمندري جهازونه، اسلحه خانې، فوځي پريډونه، توپخانې وښودل. هر کله چې هغۀ د هندوستان انګريزي عدالتونه، محکمۀ بلديات، بارک ماسټري او دفترونه د پوليس انتظام او د امن و امان واقعات او حالات وليدل نو د هغۀ په زړۀ کښې رښتيا د فيرنګيانو د قوم يو لوے رعب، هيبت او خوف کښيناستو. او د خپل قام د خلقو نه ئے يو ګونه په زړۀ کښې حقارت پيدا شو. تراوسه پورې د فيرنګيانو پوليټيکل ايجنټان په دې پاليسي باندې کاربند دي او د خودمختار علاقو نه چې کومې د هغوي د اثرد لاندې وي د هغه ځاے لوے لوے واليان رياست، ملکان او خانان ښکته ملکونو ته بيائي چې په هغوي باندې د خپل حکومت د زور، طاقت او د ځۀ انتظام رعب او دبدبه کښينوي. هغوي د خپلو فوځونو د پريډونو تماشې ته، د توپو او د ټوپکو او د کارتوسونو جوړولو کارخانې ته بيائي. او د دې غرض دا وي چې د هغوي په زړونو کښې د فيرنګيانو دومره ويره کښيني چې بيا هغوي د مقابلې او د مخالفت خيال هم په زړۀ کښې را نۀ ولي. ځۀ وخت چې دوست محمد خان کابل ته واپس راغلو نو هغۀ به د خپل قوم د مشرانو په مخکښې هم کله دا شان خبرې وکړې چې د هغې نه به دا معلوميده چې هغۀ ته د خپل قوم تهذيب، استوګنه او اخلاق د فيرنګيانو په مقابله کښې ډير لاندې ښکاري. هغۀ به په دې سلسله کښې د فيرنګيانو د طريقۀ زندګی ښۀ او د خپل قام د ټولو عادتونو بد وئيل. ورو ورو د افغانستان په ټولو خودمختار قبائلو کښې دا خيال پيدا شو چې د دوست محمد خان په زړۀ کښې د هغۀ د قيد په سبب د فيرنګيانو رعب ناست دے او ځکه هغه په هره موقع د هغوي مدح وائي مګر د دې په مقابله کښې چونکې دې

قبائلو انگریزي فوځونو سره ډېرې مقابلې کړې وې او په جنګونو کښې ئ هغوي له شکستونه ورکړي وو نو د هغوي په زړونو کښې قدرتاً د فیرنګیانو برخلاف نفرت او حقارت پروت وۀ. له دې کبله د دوست محمد خان دا قسم خبرې به په هغوي باندې بالکل ښې نۀ لګیدې او هغوي ورو ورو په دې سبب هغۀ ته سپک کتل شروع کړل. اکبر خان هم د نورو عامو پښتنو پشان د انګریزانو نه متنفر وۀ. او په دې خبره کښې د هغۀ او د هغۀ د پلار په رائ کښې ډېر اختلاف وۀ. هغۀ به دا وئیل چې اګر کۀ فیرنګیان د جنګ او د حکومت په انتظامي امورو کښې ډېر ښۀ ماهران دي مګر هغوي هیڅ بې هیڅه د نورو ملکونو ازادي په زور باندې سلب کوي. او د هر چا په زړۀ کښې د خپل رعب او خوف کښېنولو کوشش کوي. په دواړو کښې د دې اختلاف رائ نتیجه دا شوه چې هر کله دوست محمد خان فیرنګیانو سره په هر حالت کښې د دوستۍ او د مصلحت په تعلقاتو وسیدل غوښتل نو د اکبر خان دا منشا وه چې هغوي سره په هر حالت کښې دوستي ساتل او په هغوي باندې په قومي معاملاتو کښې پوره اعتبار کول د پښتون قام تباه کول دي. په دې رائ کښې محمد اکبر خان په حقیقت کښې د ټول قام د رائ ترجماني کوله او هم دغه وجه وه چې د خپل پلار په مقابله کښې هم هغۀ ته د اولس په خلقو کښې زیاته هردلعزیزي حاصله وه. او د هغۀ په خبره باندې به خلقو په نسبت د دوست محمد خان زیات غوږ ایښودلو. د محمد اکبر خان په زړۀ کښې دا شک د یقین پایې ته رسیدلے وۀ چې فیرنګیان به یو ځل بیا په افغانستان کښې د خپل اقتدار د قائمولو کوشش کوي ځکه چې د هندوستان انګریزي مقبوضاتو ته د روس د سرحد رانزدې کیدل هغوي په هیڅ شان نشو برداشت کولے او په دې کوشش کښې هغوي ورځ او شپه مصروف وو چې د روس ټول ګاونډي حکومتونه دې زمونږ زیر اثر وي. پس اکبر خان هر وخت په دې کوشش کښې لګیا شو چې هم د قام او هم د فوځ په سپاهیانو کښې دا خیال پیدا کړم چې د پښتنو د ازادۍ برقرار ساتلو دپاره دا ضروري ده چې په یوه مناسبه موقع دې د انګریزانو دا شان زور مات کړې شي چې هغوي بیا په افغانستان باندې د فوځي پیشقدمۍ خیال پریږدي. د دوست محمد خان دا کوشش وۀ چې د انګریزانو په زړۀ کښې ما سره د دوستۍ خیالات پیدا شي چې زۀ د دوئ د طرفه بیغمه شم او د ملک د بهبودۍ او د فائدې دپاره تجارت، صنعت او زراعت ته ترقي ورکړم. دغه شان د پلار او د زوي په منځکښې اګر چې ظاهري طور اتفاق وۀ ولې انګریزانو سره د تعلقاتو ساتلو او نۀ ساتلو په باره کښې د دواړو په زاویۀ نګاه کښې د زمکې او د اسمان فرق وۀ. په کال 1843ء کښې فیرنګیانو د سندهـ ټوله علاقه چې د هغې تفصیل وړاندې راغلے دے ونیوله او په دې وجه د هغوي سرحد د قندهار په طرف افغانستان سره ډېر نزدې شو. په پنجاب کښې د سکهانو د حکومت اندروني حالت ورځ تر ورځ بدتر کیدو او بحر انګریزانو په یوه لا په بله بهانه د هغوي په معاملاتو کښې هم دخل ورکول شروع کړل.

محمد اکبر خان یو نهایت زیرک، دور اندیش او معامله فهم سړے وۀ. د دې نه علاوه د پښتنو زوړ وقار او د هغوي تیر شوے شان و شوکت بیا د نوي سره قائمول د هغۀ د زندگی مقصد وۀ. د انگریزانو غوندې منظم فوځ له هغۀ په میدان کښې شکست ورکړے وۀ او بڼۀ په نره ئ ترینه خپل ملک ازاد کړے وۀ او دنیا ته ئ ثابته کړې وه چې په پریوتي حالت کښې هم پښتانۀ په شرط د دې چې په هغوي کښې اتفاق او تنظیم موجود وي د دنیا د مضبوط نه مضبوط قوم له د خپلې ازادئ برقراره ساتلو دپاره شکست ورکولے شي. هغۀ ته هیڅ وجه نۀ معلومیده چې د افغانستان قومونه دې د خپل حفاظت دپاره ولې یو مستقل تجویز او پالیسي جوړه نۀ کړي. پس هغۀ د افغانستان دپاره یو مضبوط سیاسي نظام عمل مرتب کړو. او د هغې مقصد دا وۀ چې انگریزان دې دومره فتوحاتو ته نشي پریښودې چې د هغوي سرحد د افغانستان سرحد سره وجنګیږي. په پنجاب کښې د فیرنگیانو پیشقدمی د هغۀ په دماغ کښې دا خبره کښینوله چې کۀ یو ځل فیرنگیانو پنجاب واخستلو او د اټک نه راپورې وتل نو هغوي به افغانستان ته د طمعې او حرص په سترګو ګوري. هغۀ ته د انگریزي سیاستدانانو د تقریرونو او تحریرونو نه دا معلومه شوې وه چې په هندوستان باندې د خپلې قبضې د مضبوط ساتلو دپاره انگریزان خپله پوله دریائے آمو پورې وړدول غواړي. او هم د دې غرض د حاصلولو دپاره هغوي په افغانستان د 1839ء او 1840ء لام ترلے وۀ. او د شاه شجاع د افغانستان په تخت باندې د کښېنولو په بهانه دې ملک ته راغلي وو. د افغانستان د اخستلو نه بل غرض د فیرنگیانو دا وۀ چې هغوي د پنجاب نه په دواړه طرفه راچاپیره کیدل غوښتل. ځکه چې هغوي د ډیرې مودې نه د دې علاقې د فتح کولو اراده لرله نو د هغوي لا دا خیال وۀ چې د نمرخاتۀ طرف نه به د فیروز پور نه او د قبلې طرف نه به په درۀ خیبر باندې هغوي په پنجاب فوځ کشي کوي. په حقیقت کښې د رنجیت سنگهـ دا یوه ډیره لویه سیاسي غلطي وه چې هغۀ د انگریزانو دومره لوے فوځ د خپل حکومت په مغربي محاذ باندې پریښې وۀ. د رنجیت سنگهـ د مرگ نه پس فیرنگیانو له د پنجاب د فتح کولو موقع په لاس ورغله. چنانچه هغوي د دې ملک د اخستو دپاره هر قسم تیارے وکړو. هرکله چې اکبر خان د پنجاب دا حالت ولیدو نو هغۀ دوست محمد خان له صلاح ورکړه چې مونږ له د انگریزانو برخلاف سکهانو له فوځي امداد ورکول پکار دي. بلکې کۀ چرې سکهان په پنجاب کښې د خپلې بدانتظامی، خانه جنگو او بې اتفاقو په وجه خپل حکومت نشي سنبالولې نو پښتنو له سمدستي د پیښور په علاقه باندې قبضه کول پکار دي. د انگریزانو د مقابلې دپاره د اټک نه پورې غاړه هم خپل فوځونه لیږل ضروري دي.

خلاصه دا چې محمد اکبر خان د دې تجویزونو په ذریعه دا کوشش کولو چې د دوست محمد خان په ارادو کښې لوے والے پیدا کړي. او هغه د پښتنو تیر شوے شان و

شوکت او جاه و جلال په دې موقع باندې بيا قائم کړي. دوست محمد خان حتي الوسع دا کوشش کولو چې د محمد اکبر خان خيالات دومره وړاندې کيدلو نه راښنع کړم او زيات تر ځ د خپل ملک اندروني ترقۍ طرف ته متوجه کړم. مګر دوست محمد خان په دې پوهه نۀ وۀ چې د کوم قوم ارادې او مقاصد لوي نۀ وي او د خپل حکومت د محفوظ ساتلو دپاره د لرې لرې مهمونو تکليفونه په سر نۀ وچتوي نو ضروري ده چې هغه سلطنت د خپل زوړ حالت نه هم راپريوځي. د احمد شاه او د تيمور شاه په سياسي نظام عمل کښې چې کوم لوے فرق وۀ هغه هم دا وۀ چې احمد شاه خپل فتوحات د ترکستان نه تر دهلي پورې راوستل. ولې تيمور چې د توسيع حکومت خيال پريښودو نو د چارچاپيره نه نورو خلقو په هغۀ باندې حملې شروع کړې او ټول عمر ئ په اندروني انتظاماتو او د زړو مقبوضاتو په حفاظت کښې تير شو. هم دا حالت د دوست محمد خان او د هغۀ د جانشينانو وۀ. کۀ چرې د اکبر خان په تجويزونو باندې پوره پوره غور شوے وے او سکهانو او پښتنو لا خو جارحانه او مدافعانه د دوستۍ عهدوپيمان کړے وے او په شريکه ئ د فيرنګيانو د پيشقدمۍ مقابله کړې وے او لا پښتنو په خپل سر د پنجاب د حفاظت ذمه واري اخستے وے نو نۀ صرف دا چې اوس به د پښتنو ټول قبائل بشمول بر دراني د افغانستان د حکومت د لاندې وو بلکې انګريزانو به په ډيرې خوشۍ دريائے سندھ چې د هندوستان او افغانستان قدرتي پوله دے د انګريزي حکومت پوله کړې وۀ او دغه شان به ټول پښتانۀ په يو قومي حکومت کښې پاتې شوي وو.

د اکبر خان په نظام سياسي باندې د عمل نۀ کولو نتيجه دا شوه چې نۀ صرف شپيتۀ اويا لکه پښتانۀ او د هغوي زرخيز ملک د غير قوم قبضې ته لاړ بلکې د افغانستان ټول قدرتي مشرقي استحکامات لکه د سوات، بونير، ګومل، خيبر، بولان درې د يو داسې زبردست طاقت په لاس کښې ورغلې چې کۀ چرې هغه غواړي نو په يو څو ګينټو کښې د افغانستان په ټول مشرقي محاذ باندې بې تکليفه ورننوتے شي. او هيڅ قدرتي بنديز د هغوي په لارو کښې نشته چې حائل شي.

دې کښې شک نشته چې دا ټولې درې د انګريزانو لاس ته د امير يعقوب خان او امير عبدالرحمٰن د دوست محمد د نمسو په وخت کښې راغلي دي ولې دا هم د دوست محمد خان د کمزورې پاليسۍ نتيجه وه چې د پيښور، کوهاټ، بنو، ډيره اسماعيل خان او قلات او د بلوچستان علاقه د فيرنګيانو لاس ته راغله. او د هغه ځاے نه هغوي بيا د افغانستان په حکمرانانو باندې دومره فوځي زور واچولو چې موجوده ټوله قبائلي علاقه هغوي د پښتنو نه وشوکوله. او خپل زير اثر ئ کړه.

باوجود د دوست محمد خان د دې روېې نه اکبر خان خپل مقصد نظر انداز نۀ کړو او په قام کښې ئ يو داسې منظم ټولے پيدا کړو چې هغۀ سره په دې خيال کښې متفق وو.

چونکې دوست محمد خان محمد اکبر خان له د خپل وزارت عهده ورکړې وه له دې کبله دا ټولې ورځ په ورځ زیاتیدلو ولې دوست محمد خان به ذوئ ته همیش وئیل چې د فیرنگیانو د جګړې نه ځان ساتل پکار دي. په دې منځ کښې انګریزانو په پنجاب باندې باقاعده فوځ کشي وکړه. اوس محمد اکبر خان دوست محمد خان ته په ډیر زور دا تجویز پیش کړو چې د سکهانو امداد دا وخت کول ډیر ضروري دي. مګر دوست محمد خان د دې سخت مخالفت وکړو. او قریب وه چې په دې باندې د پلار او د زوي تعلقات ډیر سخت کشیده شوې وې او اکبر خان د کابل نه هرات ته یار محمد خان سره تښتیدلے وے مګر یار محمد خان د هغوي په منځکښې صلح وکړه او دوست محمد خان په دې رضا شو چې زۀ به پنځۀ سوه سوارۀ سلطان محمد خان سره د سکهانو په امداد ولیږم. د محمد اکبر خان په دې دومره لږو سرو لیږلو تسلي نۀ کیدله. د هغۀ دا منشا وه چې کوندل خان او دوست محمد خان دې دواړه د دې نادرې موقعې نه فائده وچته کړي او ښۀ په بهادرۍ دې د ټول پښتون قوم وړاندې شي او په یوه لویه پیمانه دې د انګریزانو مقابلې له وځي. کوندل خان د دوست محمد خان نه هم زیات د انګریزانو د لاسه ویریدلے وۀ چنانچه هغۀ هم د فیرنګیانو د مقابلې نه انکار وکړو. محمد اکبر خان له د خپل پلار او ترۀ په دې کمزور دلۍ دومره قهر ورغے چې یو ځل خو هغۀ نیت وکړو چې د کوندل خان په حکومت باندې حمله کوم مګر اتفاق سره د خلم په طرف جنګ پیښ شو. او محمد اکبر خان هغه طرف ته لاړو. کوم پنځۀ سوه سوارۀ چې په 1845ء کښې دوست محمد خان د سکهانو امداد له استولي وو هغه د سوبراؤن د مشهور جنګ نه چې په هغې کښې سکهانو مکمل شکست وخوړو لږ وروستو ورسیدل او په جنګ کښې شامل نۀ شول. د دې جنګ نه پس فیرنګیان لاهور ته راورسیدل. او خپل اثر ئې عین تر پیښور پورې خور کړو. د کال 1846ء نه په وړاندې انګریزي افسران تر ډیره جات بنو، کوهاټ او پیښور پورې راورسیدل او د کشمیر علاقه چې په یوه زمانه کښې د پښتنو صوبه وه او بیا د پنځویشت کالو نه د سکهانو په قبضه کښې وه هغوي راجه ګلاب سنګهـ راجۀ جمو ته ورکړه. هم دغې راجه ته انګریزانو د جلال اباد او د خیبر علاقه هم حواله کوله. د دې دپاره چې هغوي ته د دې مقاماتو په اخستو کښې بیا څۀ تکلیف نۀ وي ولې هغۀ انکار کړے وۀ.

اوس اکبر خان د خپل پلار نه بغیر د تپوس نه پخپل مخ سر د اټک نه د پورې وتو او د انګریزانو د پیشقدمۍ د بندولو دپاره ئې لښکر برتي کول شروع کړل. هر کله چې دوست محمد خان ته معلومه شوه چې محمد اکبر خان د خپلې ارادې نه باز نۀ راځي نو هغۀ ټولو خانانو ته پټ پټ احکامات ولیږل چې تاسو د اکبر خان په لښکر کښې مۀ کیږئ او په دې طریقه هغۀ بیا د هغۀ ارادې له شکست ورکړو.

په دې ورځو کښې د اکبر خان او کوندل خان تعلقات هم ډیر خراب شول ځکه چې د کوندل خان په لمسه باندې د امیر دوست محمد خان د دربار نه ډیر سرداران قندهار ته وتښتیدل. او کوم چې لا په کابل کښې وو په هغوي کښې ئ هم ډیرې پرې جنبې پیدا کړې. د دې نه علاوه کوندل خان انګریزانو سره بیا پټ راز باز شروع کړو. دې خوا دوست محمد خان د خپلې جنبې د مضبوطولو دپاره یار محمد خان د هرات مشهور او معروف وزیر سره اتحاد جوړول غوښتل. او د دې غرض دپاره دوست محمد خان د هغهٔ نه د اکبر خان دپاره د هغهٔ لور وغوښته. په دې ورځو کښې یار محمد خان خپل ځان د شاه کامران نه بیغمه کړے وهٔ. او پخپله د هرات خودمختار حاکم شوے وهٔ. په 1846ء کښې یار محمد خان خپله مشرې لور ببو جان اکبر خان ته وادهٔ کړه. او دوست محمد خان خپله وریره ګوهر د یار محمد خان زوي سردار سید محمد خان له ورکړه. هرکله چې د اکبر خان مور د خپلې اینګور سره د هرات نه قندهار ته راورسیده نو کوندل خان د قلات غلزي په مقام باندې دا شان فسادونه پیدا کړل چې د کابل لاره ئ غیر محفوظه کړه او د اکبر خان مور د کابل د تلو نه پاتې شوه. دا ورانے کوندل خان ځکه کړے وهٔ چې هغهٔ دا نهٔ غوښتل چې د دوست محمد خان او یار محمد خان دې پخپله کښې سره اتحاد وشي. هغهٔ سره دا ویره وه چې کهٔ د دوست محمد خان او یار محمد خان دوستي وشوه نو چونکې قندهار د کابل او د هرات په منځ کښې پروت دے د دې کبله دا ممکن ده چې په ما باندې د دواړو طرفو نه حمله وشي او زهٔ د دوؤ طرفو نه راګیر شم. دوست محمد خان چې د کوندل خان د دې وراني نه خبر شو نو هغهٔ دوه زره سوارهٔ د غزني نه قلات غلزي ته د دې فساد د رفع کولو دپاره ولیږل چنانچه د دې سورو په زور د محمد اکبر خان مور او ښځه صحیح سلامت د قندهار نه کابل ته راورسیدل. کوندل د دې اتحاد په وجه ډیر ناراض شو او د یار محمد خان علاقې بکوا ته ډیر سوارهٔ د هغهٔ د تباه کولو دپاره واستول. مګر دې خوا حیدر خان د دوست محمد خان بل زوي د هغهٔ برخلاف پیشقدمي وکړه او له دې کبله کوندل خان خپل سوارهٔ واپس راوغوښتل.

هرکله چې کوندل خان فیرنګیانو سره د تعلقاتو پیدا کولو سعي کوله نو محمد اکبر خان او یار محمد خان په کال 1846ء کښې محمد شاه، شاه ایران سره جارحانه او مدافعانه عهد نامه وکړه کوندل خان چې د دې معاهدې نه خبر شونو سختې ویرې واخستو او بیا د هرات په علاقه وګوابنیدلو. د دې په مقابله کښې یار محمد خان د ګرشک په علاقه لښکر کشي وکړه. محمد اکبر خان هم په دې سبب په کوندل خان باندې د حملې کولو نیت وکړو خو دوست محمد خان منع کړو. او محمد اکبر خان د قندهار اخستلو په تجویز کښې ناکامیاب شو. هم په دې ورځو کښې اکبر خان څهٔ معمولي شان ناجوړه شو او یو هندو حکیم

د هغهٔ د علاج دپاره اتفاقاً راغلو. دې حکيم سره په ډبلي کښې ډيرې ګولۍ وې چې په هغې کښې دوه ګولۍ چې دې هندو حکيم ته معلومه وه چې د زهرو ګولۍ وې د هغه ډبلي نه دوه بې ضرره ګولۍ دې حکيم د اکبر خان په مخکښې د هغهٔ د اعتبار راوستلو دپاره وخوړلې او د زهرو ګولۍ ئې اکبر خان له ورکړې. اکبر خان چې دا ګولۍ وخوړلې نو په دريو ګينټو کښې ئې دننه دننه ساه ورکړه.

اګر چې اکبر خان مړ شو مګر کوم ټولے چې هغهٔ د انګريزانو سره د جنګ کولو په غرض د دوست محمد خان په دربار کښې تيار کړے وهٔ په هغوي کښې د هغهٔ په مرګ څهٔ کمے رانغلو. ولې د محمد اکبر خان په غير موجودګۍ کښې هغوي دوست محمد خان سره ګزاره نشوه کولے. نو څهٔ خو په هغوي کښې د هغهٔ د دربار نه وتښتيدل او څهٔ محمد شاه خان غلجي له چې د محمد اکبر خان همخيال او ډير لوے دوست وهٔ لاړل. د دې تاريخ لوستونکي د محمد شاه خان د نوم نه ناواقف نهٔ دي. هغهٔ په تحريک ازادۍ کښې د فيرنګيانو برخلاف لويه حصه اخستې وه او چونکې د هغوي د سياسياتو نه ښهٔ خبردار وهٔ په دې وجه هغه د هغوي نه سخت متنفر وهٔ. د اکبر خان د قتل شک بعضې خلقو هم دوست محمد خان باندې کولو ځکه چې هغه او د هغهٔ بعضې زامن د اکبر خان د تند طبيعتۍ نه ډير ويريدل. په دې وجوهاتو محمد شاه خان د دوست محمد خان برخلاف ښکاره بغاوت وکړو. ورومبے خو دوست محمد خان د دې بغاوت د فرو کولو دپاره يو معمولي شان لښکر وليږلو مګر چونکې ټول غلجي انګريزانو سره د تعلقاتو ساتلو په سبب د دوست محمد خان نه خفه وو هغوي ټول محمد شاه خان سره په دې بغاوت کښې ودريدل او دې لښکر له ئې شکست ورکړو. دوست محمد خان دوباره په اپريل 1848ء کښې پنځويشت زره فوځ د غلجو مقابلې ته وليږلو. او هغوي له ئې شکست ورکړو. محمد شاه خان مجبوراً خپل دوه زامن دوست محمد خان له په طور د يرغمال ورکړل. د دې نه پس دوست محمد خان د غلجو د علاقې ټول حکومت غلام حيدر خان ته حواله کړو. او جلال اباد ئې د هغهٔ صدر مقام مقرر کړو. دوست محمد خان اوس د افغانستان د اندروني معاملاتو په جوړولو کښې مشغول شو او چارچاپيره حکومتونو سره ئې د دوستۍ تعلقات جوړ کړل. د غلجو شکست د هغهٔ طاقت او دبدبه په ملک کښې لس چنده زياته کړه او کوم سرداران چې د هغهٔ نه خفه يو خوا بل خوا تښتيدلي وو هغوي هم د څهٔ مودې نه پس د هغهٔ دربار ته سلاميان راغلل. هرکله چې فيرنګيانو دا وليدل چې د دوست محمد خان دور انديشي، تجربه او د افغانستان اندروني امن و امان د فيرنګيانو دپاره هم دغه هومره مضر دے لکه چې څهٔ رنګ د اکبر خان تند خوئ او جارحانه قوتونه وو نو هغوي د دوست محمد خان د مرعوب ساتلو دپاره او هغهٔ ته هميشه د يوې خطرې مخامخ ساتلو په غرض سکهانو ته دا سوال وکړو چې سلطان محمد خان چې د دوست محمد خان ميرنے

وروْر او د هغهٔ سخت دشمن وۀ له اجازت ورکړي چې په پيښور کښې اباد شي. لوستونکو ته به ياد وي چې سلطان محمد خان د کال 1822ء نه تر کال 1834ء پورې د پيښور په علاقه کښې حاکم وۀ او رنجيت سنګهـ له به ئ څۀ معمولي خراج ورکولو مګر هر کله چې په کال 1834ء کښې شاه شجاع په قندهار باندې حمله وکړه او دوست محمد خان قندهار ته د هغۀ مقابلې له لاړو نو رنجيت سنګهـ د پيښور علاقې ته راغلو او هغه ئ د سلطان محمد خان نه وشوکوله. او په باقاعده طور ئ پخپل حکومت پنجاب کښې شامله کړه. بيا رنجيت سنګهـ هغۀ له د روهتاس ګورنري ورکړه مګر څۀ وخت چې په کال 1839ء کښې فيرنګيانو په افغانستان باندې لام وتړلو نو سکهانو هغه د انګريزانو په وينا لاهور ته واستولو. د دې دپاره چې هسې نه چې سلطان محمد خان د روهتاس نه د افغانستان په سياسياتو کښې دخل ورکړي. هر کله چې رنجيت سنګهـ مړ شو نو سلطان محمد خان لا هم هغه شان په لاهور کښې سکهانو سره نظربند وۀ. هر کله چې دوست محمد خان ځان مضبوط کړو او په ملک کښې بالکل امن و امان شو نو په دې امن کښې د دخل اندازۍ دپاره سکهانو د انګريزانو په وينا هغه پيښور ته راوليږلو. څۀ وخت چې سلطان محمد خان پيښور ته راورسيدو نو دوست محمد خان فوراً د انګريزانو په دې چالبازۍ پوهه شو ولې په ځاے د دې چې هغۀ د سلطان محمد خان د ناراضګۍ اظهار کړے وے هغۀ فوراً محمد افضل خان خپل زوے د هغۀ د طبع تسلي او د رضا کولو دپاره وليږلو. حقيقت دا وۀ چې دوست محمد خان د خپل وروْر په غربت او بيکسۍ باندې ډير غمژن وۀ او دا ئ نۀ غوښتل چې هغه دې در په در د غير قومونو په کوټو کښې په پنشنونو او جاګيرونو ګزاره کوي. د دې نه ورومبے هم هغۀ ډير سړي سلطان محمد خان له راستولي وو او هغۀ ته ئ په کابل کښې د استوګنې اختيارولو دپاره وئيلي وو خو د هغۀ په زړۀ کښې دومره کينه او بغض پروت وۀ چې هغۀ د دوست محمد خان په دې يوه خبره هم غوږ نۀ کښيښودلو. او د غير قومونو غلامي او محتاجي ئ د خپل وروْر په دوستۍ باندې غوره کړې وه. دا ځل چې هغه پيښور ته راغلو نو دوست محمد خان بيا د هغۀ د پخلا کولو کوشش وکړو. په دې ورځو کښې سلطان محمد خان د پيښور نه کوهاټ ته تلے وۀ. چنانچه محمد افضل خان هم هغۀ پسې کوهاټ ته لاړو او هغه ځاے کښې ئ په ډير منت او اخلاص سلطان محمد خان کابل ته په تلو باندې رضا کړو. هر کله چې سلطان محمد خان کابل ته ورسيدو نو دوست محمد خان په ډير محبت او مينې د هغۀ استقبال وکړو او تر څۀ مودې پورې د دواړو وروڼو په منځکښې صلح او صلاحيت موجود وۀ.

لږه موده پس په غلجو کښې بيا بغاوت وشو او محمد شاه خان ئ سرغنه شو. دوست محمد خان د هغوي د سرکوبۍ دپاره غلام حيدر خان واستولو. او دې سره هغۀ دا اعلان هم وکړو چې زۀ اوس زوړ شوے يم د دې دپاره زۀ ټول فوځي اختيارات غلام حيدر

خان تـه حواله کوم زۀ به صرف د ملک اندروني انتظام کوم. په دې باندې هغۀ ټول سرداران چې د محمد اکبر خان د پرې او د خیالاتو وو ډیر خوشحاله شو ځکه چې غلام حیدر خان د محمد اکبر خان سکه ورور وۀ او د فیرنګیانو نه ئ هم دومره نفرت وۀ لکه چې څۀ رنګ د اکبر خان وۀ. غلام حیدر خان په بهادری او په جرأت کښې د محمد اکبر خان ثاني وۀ او په ډیر استقلال ئ د فیرنګیانو په غزني کښې مقابله کړې وه. هر کله چې غلام حیدر خان د سپه سالاری فرائض سنبال کړل نو سمدستي ئ د فوځ د سپاهیانو تنخاګانې زیاتې کړې. او د اکبر خان د جنګ طرفداره ډله ئ د ځان نه چاپیره راغونډه کړه. د ټولو نه وړومبے هغۀ محمد شاه خان سره د یوځاے کیدلو کوشش وکړو مګر هغۀ بدستور په سرکشی اصرار کولو. لـه دې کبله د یوې زبردستې حملې کولو نه پس ئ د هغۀ ټول باغي فوځ تباه او برباد کړو او د غلجو ټوله علاقه ئ لاندې کړه.

د دې نه پس اوس د ټول فوځ د مشرانو او د سپاهیانو دا خواهش وۀ چې مونږ دې غلام حیدر خان انګریزانو سره وجنګوي. چې د پښتنو زاړۀ مقبوضات د پنجاب په اړې ګړي کښې بیا د پښتنو لاس ته راشي. امیر دوست محمد خان اګر چې د قوم او د فوځ د سردارانو دې متفقه فیصلې مجبور کړو چې د فیرنګیانو مقابلې ته وځي ولې څۀ وخت چې هغۀ دا فیصله وکړه نو په داسې مات زړۀ ئ وکړه چې کوم تجاویز هغۀ د دې اعلیٰ مقصد د حاصلولو دپاره جوړ کړل هغه دومره ناکافي او نامکمل وو چې د هغې ناکامي یقیني وه. انګریزان دا وخت عین تر اټک پورې راخوارۀ شوي وو. او اګر چې د پنجاب براے نام حکومت د سکهانو په لاس کښې وۀ ولې د دې ټول ملک فوځي استحکامات او چاؤنی اکثر د انګریزي فوځ او پولیټیکل افسرانو په قبضه کښې وے. سکهانو د ډیر عمر نه پخپله دوست محمد خان ته د فوځي امداد په بدل کښې د پیښور د علاقې د واپسی وعده کړې وه مګر د فیرنګیانو د ویرې نه هغۀ تراوسه پورې د دې وعدې نه د فائدې وچتولو نه انکار کړے وۀ. او انګریزانو په دې منځکښې ورو ورو خپل فوځي اثر په ټول پنجاب کښې خور کړے وۀ. اوس چې د فیرنګیانو طاقت عین تر پیښوره پورې راورسیدو او ځاے په ځاے د هغوي پښې مضبوطې شوې نو دوست محمد خان ډیر په مات زړۀ د پیښور د اخستو نیت وکړو. دا هم ځکه چې کۀ دوست محمد خان د فوځ دا مطالبه منظور کړے نۀ وے او فوځي پیشقدمي ئ نۀ وے کړے نو هغوي دهغۀ د تخت نه د کوزولو سازش کړے وۀ. اخر په کال 1848ء کښې دوست محمد خان د پنځلسو زرو سرو سره د پیښور علاقې ته راکوز شو. او سمدستي ئ تر اټک پورې په ټوله علاقه باندې قبضه وکړه. کرنل هربرټ ایډورډ د اټک د قلعه کمانډر وۀ هغۀ د دوست محمد د راتلو سره قلعه پرېښوده. او پښتنو په هغې باندې قبضه وکړه. په دې وړځو کښې سکهانو د انګریزانو برخلاف د پنجاب په ټولو اطرافو کښې بغاوتونه کړي وو. او چهتر

سـنگهـ او شير سنگهـ د هغهٔ زوي سکهان د فيرنگيانو برخلاف هر ځاے راوچت کړي وو. د دې کبلـه فيرنگيان په هر طرف د هغوي په مقابلو کښې مصروف وو کهٔ چرې دوست محمد خان غوښتلې او د جرأت او د همت نه ئې کار اخستې وے نو هغهٔ دا وخت په معمولي کوشش سـره کشـميـر بيـا اخستې شو. او سکهانو سره به ئې ځاے په ځاے د امداد په ذريعه نوره ډېره عـلاقـه چې په ابتدا کښې د پښتنو صوبې وے حاصلې کړې وے. مگر د فيرنگيانو د دبدبې د خـوف نـه هـغـهٔ تر اټکه يورې علاقه چې په هغې کښې ټول پښتانهٔ اباد وو اخستو باندې صبر وکړواو د مخکښې وړاندې کيدو نه ويريدو. د فوځ سرداران د دوست محمد خان په دې بې هـمتـي بـانـدې بـرافـروختـه شول. او ورته ئې صاف ووئيل چې کهٔ دا وخت پښتنو سکهانو له امـداد ور نـهٔ کـړو نـو اغـلـب ده چې انگريزان هغوي له شکست ورکړي. او بيا پښتانهٔ هم د اټـک نـه راپـورې بـاسـي. او د پيښور عـلاقـه پـخـپـل حـکومت کښې شامله کړي. د جنگ طـرفـدارې ډلـې پـه دوسـت محمد خان دومره زور واچولو چې هغه د هغوي مطالبې ته په سر ټيټـولـو مـجـبـور شـو. او په مات زړهٔ ئې د سوزو يوه دسته د شير سنگهـ امداد له واستوله. دا امـدادي دسـتـه هـغـهٔ صـرف د خپـل فـوځ د رضـا کولو دپاره ليږلې وه. گني د هغهٔ خپله مدعا فيـرنـگيـانـو سـره د جنگ کولو بالکل نهٔ وه. کهٔ چرې دا وخت هغهٔ د خپل فوځ د جوش او د هـمـت نه فائده وچته کړې وے او د احمد شاه او شاه زمان په شان ئې پخپلو ارادو کښې لوے والـے او وسعت پيدا کړے وے نو دا يقيني خبره ده چې کهٔ ټول پنجاب او سندهـ د هغهٔ لاس تـه نـهٔ وے راغـلـے نـو د کـشـمـيـر او پيښور علاقه به انگريزانو هغهٔ ته په خوشحالۍ او په رضا پـريښې وه. دا وخـت انـگـريـزانو ته قومي مشکلات ډېر پيښ وو. کهٔ چرې لږ په کلکه او په پـخـه اراده دوسـت محمد د هغوي مقابلې ته وتې وے نو هغوې به ضرور په څهٔ نا څهٔ شرطونو بـانـدې هـغـهٔ سـره په صلح کولو مجبور شوي وو. مگر هغهٔ لويه غلطي دا وکړه چې هغه هم د انـگـريـزانـو مقابلې ته ووتو او بيا ئې په مات زړهٔ نامکمل تجويزونه اختيار کړل. نتيجه دا شوه چې اگـر چې شيـر سـنـگهـ په انگريزانو باندې د چيليانواله په مقام باندې فتح بيامونده مگر فيـرنـگيـانـو دوباره په 21فروري 1849ء کښې د گـجـرات پـه مـقـام د سکهانو او د پښتنو مشتـر کـه لښـکـر تـه سـخـت شـکـسـت ورکـړو. او د دوست محمد خان رساله بيا په اټـک پـريـوتـلـه. چهتـر سنگهـ او شير سنگهـ قريباً يوې مياشتې پورې د انگريزانو مقابله وکړه مگر چونکې دوست محمد خان هغوي له بيا هيڅ کومک ونهٔ ليږلو او په جنگونو کښې لويې لويې تـوپـې ټـولـې د هـغـوي د لاسـه ووتـلې د دې کبله هغوي اخر کار سره د خپله فوځه سروالټر گـلبـرټ ته سلاميان شول. او د ټول سکهـ فوځ نه وسله واخستې شوه. اوس د دوست محمد خـان وار راغـے. چنانچه لارډ گف کمانډر انچيف سر والټر گلبرټ ته حکم ورکړو چې فوراً پـه اټـک او پـه پيښـور حـمـلـه وکـړه او تـر پيښوره پورې ټوله علاقه مسخر کړه. د دوست

محمد خان تراوسه پورې دا طمع وه چې فيرنګيان به د پښتنو د پلار نيکۀ په علاقه باندې نۀ بلوسيږي. ځکه چې ما د هغوي برخلاف ځرنګ چې پکار وۀ جنګ نۀ دے کړے. دغه طمع وه چې د دوست محمد خان په اميدونو ئ يخې اوبۀ توئ کړې او د هغۀ ټول تجويزونه ئ درهم برهم کړل. د سروالټر ګلبرټ ټول فوځونه اوس د سکهانو نه فارغ شوي وو. چنانچه هغۀ په ډير زور شور په دوست محمد خان باندې حمله وکړه او ورله ئ شکست ورکړو. دوست محمد خان په مشکله ځان د هندوستاني رسالې د تعاقب نه د درۀ خيبر په غونډو کښې خلاص کړو. دغه شان د دوست محمد خان د لاس نه يوه بله نادره موقع د پښتنو د پلار نيکۀ د ملک د اخستو ووته. په دې شکست باندې ټول قوم د هغۀ ناراض شو او د هغې ټوله وجه ئ د هغۀ کم همتي او فيرنګيانو سره د هغۀ د زړۀ د اخلاصه د جنګ نۀ کول وګڼل.

## دويم باب

د يار محمد خان سره د سټډارټ په رويه کښې تبديلي راتلل، او سټډارټ د هرات نه په تلو مجبوره کول، او يار محمد خان ته د نوې معاهدې دپاره درخواست کول، د ميجر ټاډ نوې سفير مقرريدل، او د يار محمد خان برخلاف شاه کامران لمسول، د ميجر ټاډ واپس کيدل،او د سکهانو په جنګ کښې مړ کيدل، په خيوا باندې د روس د حملې اراده او د هغې د دفع کولو تدبيرونه، د کپتان کنولي د قوقند په امير اثر اچول او د هغۀ د امير بخارا د امارت نه امن ورکول، د کرنل سټډارټ بخارا ته د تلو قصه او د هغۀ ګرفتاري او مسلمانيدل او بيا مرتد کيدل. په اخر کښې کپتان کنولي او سټډارټ د مخبرئ په جرم کښې قتليدل.

لوستونکو ته به ياد وي چې د افغانستان وړومبنے لام فيرنګيانو په دې وجه کړے وۀ چې انګريزانو ته د روسيانو د لاس نه په هندوستان باندې د حملې کولو خطره وه او دا ويره د هغوي په زړۀ کښې د ايران په هرات باندې په کال 38-1837ء کښې نوره هم زياته شوه ځکه چې په دې ورځو کښې ايران د روس د اثر لاندې وۀ. او کۀ چرې ايرانيان د هرات په اخستو کښې کامياب شوے وے نو د انګريزانو دا خيال وۀ چې په لږه موده کښې به روس په هرات باندې فوځي قبضه کړې وے. او چونکې هرات د افغانستان او د هندوستان د آمدورفت دروازه ګڼلې شوه له دې کبله انګريزانو د ايران د دې حملې په ډيرې سختۍ سره مخالفت وکړو او هم د دې دپاره ئ لفټيننټ الډرډ پوټنګر خفيه طور د يو هندو حکيم په جامه کښې د ډيرو روپو سره هرات ته د محاصرې نه لږ وړومبے ليږلے وۀ. او د يار محمد خان او د هغۀ د فوځ په بهادرئ، او د فيرنګيانو د روپو په ذريعه ايرانيان د هرات نه ناکام واپس راغلل مګر

فیرنګیانو د روس د خطري نه د ځان ساتلو دپاره دا سوال د همیشه دپاره حل کول غوښتل. چنانچه لکه څرنګ چې وړومبې ذکر شوې دې هغوي په کال 1839ء کښې په افغانستان باندې پخپله قبضه وکړه او په هرات کښې ئې بدستور پوټنګر د محاصرې د ختمیدو نه پس په هرات کښې یار محمد خان سره په طور د انګریزي سفیر دیره کړو. اګر چې وړومبې وړومبې د انګریزانو دا خیال وُ چې نور افغانستان سره د هرات په علاقه هم قبضه کول پکار دي. ولې د ډیرو رجوهاتو په بنا باندې هغوي في الحال دا نامناسب وګڼله او دا فیصله ئې وکړه چې د شاه کامران نه هم مونږ د هندوستان یو راجه جوړ کړو. او د یو څو لکو روپو په سالانه ادائیګۍ سره مونږ د هرات په استحکاماتو فوځي قبضه وکړو. د هرات علاقه فیرنګیانو پخپله خوښه خودمختاره نهٔ وه پریښې بلکې یار محمد خان د هرات د ازادۍ د برقراره ساتلو دپاره د خپل سرومال نه تیر وُ او بغیر د سختې خونریزۍ نه د فیرنګیانو دپاره د هغې اخستل نامکن وو بلکې مجبوراً پوټنګر او کرنل سټډارټ خپل حکومت ته ولیکل چې د هرات اصلي واک اختیار د یار محمد خان په لاس کښې دې نه چې د شاه کامران او چونکې هغه زمونږ د ارادو او د مقاصدو سخت مخالف دې له دې کبله هغه د کامران او د نورو هراتیانو په امداد سره په ډیره اسانه د خپل ځاے نه لرې کیدے شي. بس انګریزانو په ځاے د فوځي حملې د هرات اخستل سیاسي چال بازۍ ته وسپارل او د دې خبرې په انتظار کښې شول چې په یو نه یو ذریعه مونږ یار محمد خان د هرات نه لرې کړو. یار محمد خان په افغانستان کښې د هغې هوښیار او قابل سیاستدانانو نه وُ چې د فیرنګیانو په رګ رګ پوهه وُ. هغهٔ سره د ډیرو نقصانونو دا شان بیدار مغز هم وُ چې میجر پوټنګر خپل ګورنمنټ ته د هغهٔ متعلق ولیکل چې: "هغه په وسط ایشیا کښې یو ډیر قابل او تجربه کار بدمعاش دے." بدمعاش خو هغه ځکه وُ چې هغهٔ د انګریزي فرښتو د مقابلې کولو عظیم الشانه ګناه کوله. او قابل ځکه وُ چې هغه د دې انګریزي فرښتو په ټولو چالبازو پوهیدلو. او له دې کبله انګریزان د خپل مقصد په حاصلولو کښې د اول نه تر اخره پورې ناکام پاتې شول.

په کال 1838ء کښې څهٔ وخت چې شاه ایران د هرات محاصره وچته کړه نو انګریزانو د میجر پوټنګر په ذریعه د هرات فوځونو له بدستور تنخواه ورکول جاري وساتل ځکه چې د ایران حملې د هرات علاقه بالکل تباه او برباد کړې وه او چارچاپیره په ملک کښې سخت قات وُ او یار محمد خان او شاه کامران سره د فوځ د تنخواه دپاره یوه پیسه هم نهٔ وه. دا موقع فیرنګیانو د شاه کامران او د هغهٔ د دربار د نورو سردارانو، خپل ځان ته د را اړولو دپاره یوه ډیره زرینه خیال کړه. یار محمد خان په دې پوهه وُ چې دا ټول چل ماته دے او د فیرنګیانو د لاسه د هرات ازادي په خطره کښې ده. وړومبې وړومبې خو انګریزي افسران به د یار محمد خان په مخکښې په ډیرې عاجزۍ، په ادب او په خوش خلقۍ سره

پیش راتلل او په هره معامله کښې به ئ د هغهٔ د منصب او درجې مطابق عزت کولو مګر هر کله چې انګریزي فوځونه په کابل کښې داخل شو او انګریزانو ډیرې روپی په هرات کښې ولګولې نو د هغوي دا خیال پیدا شو چې د یار محمد خان په زړهٔ کښې به د انګریزانو د فوځي او د مالي زور اثر او دبدبه پیدا شوې وي او د لږ زور په ښکاره کولو او مغرورانه سلوک کولو باندې به یار محمد خان زمونږ ټول مطالبات منظور کړي. چنانچه کرنل ستډارټ به کله کله د یار محمد خان په مخکښې ډیر په بې ادبی سره پیش راتلو. او خپل ځان به ئ د هغهٔ افسر اعلیٰ ظاهرولو. او د هغهٔ په معاملاتو کښې به ئ په زور دخل ورکولو. د هغهٔ دا طمع وه چې یار محمد خان دې بې چون و چرا زما د احکامو تعمیل کوي او څهٔ وخت چې به یار محمد خان د هغهٔ په منلو کښې لیت و لعل وکړو نو کرنل ستډارټ به ځان ډیر په غصه کړواو اکثر به ئ په هغهٔ سترګې راوویستې او سپورې ستغې به ئ ورته وکړې. د کرنل ستډارټ دا د تکبر او د فرعونیت رویه خو یار محمد خان د څهٔ مودې دپاره د انګریزانو د سابقه خدماتو په سبب وزغمله ولې څهٔ وخت چې کرنل ستډارټ د حد نه تجاوز وکړو او دا شان لارې شړله چې د شاه کامران په ځاے ئ خپل ځان د هرات بادشاه ګنړلو نو یار محمد خان کومې وړدې واکې چې هغهٔ له ورکړې وې هغه ئ راښکلې او ستډارټ ته ئ حکم وکړو چې فوراً د هرات نه وځه. ستډارټ مجبوراً هرات پریښودو او په یو بل سیاسي مشن باندې بخارا ته لاړو. میجر پوټنګر اوس پوهه شو چې یار محمد خان هسې په دوړه دپکه او په رعب داب نهٔ قابو کیږي. له دې کبله هغهٔ خپله رویه بدله کړه او په ډیر منت ئ د یار محمد خان نه په هرات کښې د پاتې کیدو اجازت واخستو. میجر پوټنګر بدستور انګریزي زر او مال چارچاپیره لګولو او هم ئ شاه کامران له او هم ئ یار محمد خان له غټ غټ رقمونه ماهوار ورکول. هر کله چې د ایسټ انډیا کمپنی یو لوے رقم په دې طریقه خرڅ شو نو میجر پوټنګر یو ځل بیا د یار محمد خان نه د انګریزانو سره د یوې مستقلې عهدنامې مطالبه وکړه. د هغې مجوزه عهدنامې شرطونه هغوي یار محمد خان ته دا پیش کړل چې (۱) د هرات حکومت داصلاح کار دې انګریزي ګورنمنټ ته حواله شي چې هغه د انګریزي ایجنټانو په ذریعه په هرات کښې حسن انتظام قائم کړي. (۲) د هرات په قلعه کښې دې انګریزي افسرانو ته اجازت وشي چې د هراتیانو دوه باقاعده پلټنې هغوي د انګریزي افسرانو د لاندې واچوي. (۳) د غوریانو قلعه چې 1837ء نه د ایرانیانو په قبضه کښې ده هغه دې شاه کامران بیا مسخر کړي.

یار محمد خان دا درې واړه شرطونه مسترد کړل او میجر پوټنګر سره ئ چې څهٔ حوړې خبرې وې هغه هم پاتې شوې. په دې میجر پوټنګر د یار محمد خان او شاه کامران پنشنونه بند کړل. یار محمد خان میجر پوټنګر ته ووئیل چې د هرات علاقه ایرانیانو د

فیرنګیانو د دشمنی په وجه برباده کړې وه له دې کبله انګریزانو له پکار دي چې مونږ سره مالي امداد وکړي. او کۀ نۀ وي نو مونږ به ایران سره سمجهوته وکړو. دې تجویز سره یار محمد خان خپل ورور شیر محمد خان میجر پوټنګر ته ورولیږلو. هرکله چې میجر پوټنګر او د شیر محمد خان په دې معامله باندې خبرې اترې کیدلې نو میجر پوټنګر خپل ځان ډیر په قهر کړو او څۀ وخت چې شیر محمد خان د دې جواب ورکړو نو هغۀ خپل یو نوکر ته حکم وکړو چې دې بهر ته وباسه. شیر محمد خان د میجر پوټنګر نوکر راونیولو او ښۀ ئې وټکولو. په دې د یار محمد خان او میجر پوټنګر نوره هم ډیره ورانه شوه. او فیرنګیانو دا کوشش شروع کړو چې هر شان چې وي یار محمد خان د خپلې عهدې نه برطرف کول پکار دي. په دې اثنا کښې میجر پوټنګر د هرات د علاقې نه بدل شو. او میجر ټاډ د هغۀ په ځائے په هرات کښې سفیر مقرر شو. میجر ټاډ سره جیمز ایبټ او رچمنډ شکسپیر هم ملګري لاړل. او سانډرس انجنر هم ورسره لاړو. د دې دپاره چې هغه د هرات استحکامات مضبوط کړي.

وړومبے وړومبے خو میجر ټاډ دا کوشش وکړو چې یار محمد خان د چل ول او د پیسو په دام کښې ګیر کړم مګر چې په دې کار ونشو نو هغۀ شاه کامران ته، یار محمد خان د خپلې عهدې نه د لرې کولو لمسون راواخستو. چونکې شاه کامران سخت شرابخور او د عیش و ارام د ژوند شوقین وۀ او انګریزانو هغۀ له یو لوے پنشن مقرر کړے وۀ. هغۀ میجر ټاډ ته ووئیل چې کۀ چرې تاسو زما په امداد کښې ودریږئ او ماله فوځي امداد راکوئ نو زۀ به یار محمد خان لرې کړم مګر بغیر ستاسو د فوځي امداد نه زما دومره طاقت نشته چې یار محمد خان زۀ د خپلې عهدې نه موقوف کړم. چونکې یار محمد خان هیڅ انګریزي فوځ له د هرات په علاقه کښې د پاتې کیدو اجازت نۀ وۀ ورکړے میجر ټاډ شاه کامران له د فوځي امداد ورکولو نه انکار وکړو. مګر بدستورئ شاه کامران ته د دې لمسون کولو چې یار محمد خان د خپلې عهدې نه لرې کړه. څۀ وخت چې حکومت هند ته دا حالات معلوم شول نو هغوي میجر ټاډ ته ووئیل چې هرکله ټول واک او اختیار د یار محمد خان په لاس کښې دے نو تا له په ځائے د شاه کامران یار محمد خان رضا کول پکار دي. مګر چونکې یار محمد خان هغوي د هرات خودمختاری پریښودلو ته نۀ شو تیارولې نو میجر ټاډ په دې کار کښې بالکل ناکام شو. یو ځل دا شان چل وشو چې د کال 1839ء په اخر اخر کښې یار محمد خان ته په حیثیت د وزیر یو لک روپۍ په لاس ورغلې. یار محمد خان حسب معمول یوه ورځ د شاه کامران محل ته د سلطنت په امورو باندې د بحث کولو دپاره لاړو. او په ډیر ادب سره د خپل بادشاه په مخکښې په دوارو زنګنونو باندې ناست وۀ. شاه کامران د خپل عادت مطابق په شرابو کښې مخمور ناست وۀ چنانچه هغۀ دغه یو لک روپۍ د یار محمد خان نه طلب

کړې هغهٔ ورته په جواب کښې ووئيل چې د ملک اندرون په ډير ابتر حالت کښې دے ما دا روپۍ د حکومت په بهترۍ کښې راوستې دي او اوس ماسره هيڅ شے نهٔ دے پاتې. شاه کامران ډير په قهر شو او يار محمد خان ئ په يو لاس د ډيرې نه راونيولو او په بل لاس ئ ورپسې چاړهٔ راوښکله مګر يار محمد خان په ډيرې حوصلې بغير د مقابلې کولو نه په پوره جرأت او استقلال شاه کامران ته ووئيل چې وهه مې، وهه مې زما قسمت ستا په لاس کښې دے ما روپۍ د حکومت په ښيګړه کښې لګولي دي. او دا وخت ما سره يوه پيسه هم نشته چې در ئ کړم. د نشې په حالت کښې هم په شاه کامران باندې د يار محمد خان د دې جرأت او د حوصلې دومره اثر وشو چې هغهٔ سمدستي چاړهٔ بيا په تيکي کښې کښېنوده او يار محمد خان بيا رخصت شو. د دې نه پس د يار محمد خان په زړهٔ کښې دا خبره کښېناسته چې د شاه کامران کمزورے طبيعت او د هغهٔ عيش پسندي زما د ژوند او د هرات د خودمختارۍ دپاره خطرناک ثيز دے. يار محمد خان په دې هم پوهه شو چې د شاه کامران دا ناساپي په خپله رويه کښې تبديلي راوستل د ميجر ټاډ د لمسون نتيجه ده.

د دې واقعې نه پس يو ځل بيا د يار محمد خان د قتل دپاره د هغهٔ تربور سردار دين محمد سازش جوړ کړو او په دې غرض سردار دين محمد هغهٔ له ډوډۍ وکړه. عين هغه وخت چې يار محمد خان د دين محمد کور ته په ورننوتو کښې وهٔ چې هغه د دې سازش نه خبر شو او سمدستي خپل کور ته واپس راغے. يار محمد خان راتلو سره پنځهٔ سوه سړي د سردار دين محمد کور ته وليږل او هغه ئ ګرفتار کړو. چونکې سردار دين محمد له به ميجر ټاډ ډيره تنخواه ورکوله او هغه باقاعده د فيرنګيانو په ډله کښې شامل وهٔ له دې کبله قدرتاً يار محمد خان دا خيال وکړو چې سردار دين محمد هم ماته ميجر ټاډ لمسولے دے.

د دې قسم واقعاتو نه يار محمد خان ته دا معلومه شوه چې انګريزان اوس په هرات کښې د خپل اثر د قائمولو دپاره زما په مرګ پسې لګيدلي دي. انګريزانو ته دا هم په ښهٔ شان سره معلومه شوې وه چې کهٔ يار محمد خان د هرات نه لرې شو نو بيا مونږ په شاه کامران باندې خپل هرقسمه شرطونه منلي شو. چونکې انګريزانو ځان له په هرات کښې يوه ډله پيدا کړې وه چې په هغې کښې شهزاده محمد يوسف چې د حاجي فيروزالدين نمسے وهٔ او سردار دين محمد چې د يار محمد خان تربور وهٔ او د هرات قاضي محمد حسن وو په دې وجه هغهٔ د انګريزانو په مقابله کښې د ايران سره د پرې جوړولو کوشش شروع کړو او آصف الدوله ګورنر جنرل خراسان ته ئ د انګريزانو برخلاف يو خط وليکلو چې زهٔ ځان د محمد شاه، شاه ايران حفاظت ته سپارم. ميجر ټاډ چې د دې نه خبر شو نو هغهٔ سمدستي ميکناټن ته خط وليکلو چې انګريزانو له په هرات باندې پيشقدمي کول پکار دي ځکه چې يار محمد خان ايران سره د دوستۍ عهدوپيمان کولو ته نيت کړے دے. ميکناټن هم د ټاډ دې تجويز سره

اتفاق وکړو او حکومت هند ته ئ ولیکل چې په افغانستان کښې د انګریزي حکومت د حفاظت دپاره دا ضروري ده چې هرات دې فوراً مسخر کړې شي. مګر ګورنر جنرل دا تجویز نامنظور کړو. او میجر ټاډ ته ئ ولیکل چې ته یار محمد خان سره د خوشګوار تعلقاتو پیدا کولو کوشش وکړه. او په ځاے د دې چې ته هغه په زور او ویرولو ځان طرف ته کړې هغه ته د انګریزانو سره د دوستئ او اتحاد په فائدو باندې هغه قائل کړه. لارډ آکلینډ میجر ټاډ ته دا هم ولیکل چې یار محمد خان لږه موده شوې ده چې د ایران په ډیره بهادرئ او مستقل مزاجئ سره مقابله کړې ده او په دې سبب هغه په زړه کښې د ایران نه سخت متنفر دے مګر معلومیږي چې د فیرنګیانو د ارادو متعلق او د هغوي د سیاسي طرز عمل بابت د هغه په زړه کښې شکونه پیدا شوي دي. نو پکار دي چې ته یار محمد خان سره د دوستئ او نرمئ سلوک راواخلې. د دې هدایاتو ماتحت د میجر ټاډ او د یار محمد خان تعلقات څه موده پورې ښه پاتې شول ولې د غوریانو د قلعه اخستو په سوال باندې د هغوي تعلقات بیا راښکلې شول. انګریزانو د همیش نه یو خوا خو په ایران زور اچولو چې د غوریانو قلعه پریږدئ او بل خوا ئ یار محمد خان ته ترغیب ورکولو چې تاسو دا قلعه بیا خپل حکومت کښې شامله کړئ. چنانچه د ګورنر جنرل د برني هدایاتو نه لږه موده پس میجر ټاډ یار محمد خان له دوه لکه روپئ ورکړې چې په غوریانو سمدستي لښکر کشي وکړه مګر چونکې د دې نه یو څو میاشتې وړومبے یار محمد خان شاه ایران ته د دوستئ او د عقیدت خطونه لیږلي وو هغه دې خبرې ته تیار نشو په دې باندې میجر ټاډ ډیر ناراض شو. او بیا ئ د شاه کامران او یار محمد خان جاګیرونه کم کړل. دې خوا ته اوس شاه ایران یار محمد خان سره د اتحاد قائمولو کوششونه راواخستل او مرزا مسعود خپل وزیر خارجه ئ غوریان ته راولیږلو چې یار محمد خان سره دلته ملاقات وکړي. میجر ټاډ چې د دې نه خبر شو نو هغه نورې روپئ یار محمد خان ته ورکړې او هغه ئ غوریان ته د تلو نه منع کړو. باوجود د دې نه میجر ټاډ قسماقسم شکایتونه د یار محمد خان برخلاف میکناټن او حکومت هند ته وکړل مګر ګورنر جنرل دې ته بالکل تیار نه وه چې په فوځي پیشقدمو دې یوه پیسه هم نوره ولګوي. نتیجه دا شوه چې د یار محمد خان او د میجر ټاډ په منځکښې یو مسلسل کشمکش ونښتو او دواړو د یو بل په تباهئ کښې څه کسر پرې نښودو. او یو بل ته به ئ جالونه کښیښودل. اخر میجر ټاډ بیا په فروری 1841ء کښې د شاه کامران او د یار محمد خان مواجب بند کړل. په دې باندې یار محمد خان د مطالباتو یو فهرست میجر ټاډ له ورکړو چې د هغې غټ غټ شرطونه دا وو:

(۱) د هرات استحکامات دې نور هم وسیع کړې شي. او ایسټ انډیا کمپني دې مونږ له یو دومره لوے رقم راکړي چې په هغې باندې مونږ د ملک اندروني انتظام قائم کړې شو. (۲) په مونږ باندې دیرش زره پونډه قرضه ده هغه دې کمپني ادا کړي. (۳) د مځکښې دپاره دې زما

مواجب زيات کړې شي او د يو کال پيشګي دې ماله راکړې شي. د دې په جواب کښې ميجر ټاډ ورته دا شرطونه پيش کړل چې دا ټولې به زۀ وکړم کۀ چرې (۱) يار محمد خان خپل مشر زوے سردار سيد محمد خان کابل ته سره د خپلو سرو په انګريزي فوځ کښې د نوکر کيدو دپاره ليږي. (۲) کۀ چرې د هرات په قلعه کښې انګريزي فوځ د ديره کيدو دپاره پريښودې شي. (۳) د روز باغ شاهي محل دې سره د خواؤ شا زمکې فيرنګيانو ته ورکړې شي چې په هغې کښې د انګريزي فوځ دپاره بارکونه جوړ کړې شي. (۴) د شاه کامران د دربار سردارانو له به ماجبونه ايسټ انډيا کمپني د خپل سرې په لاس د مخکښې دپاره ورکوي نه چې د يار محمد خان په لاس.

يار محمد خان دا ټول تجويزونه نامنظور کړل او ورته ئې په جواب کښې ووئيل چې د هرات د استحکام او د هغۀ د بيروني حملو نه د بچ کولو دپاره د هرات حکومت ته د روپو سخت ضرورت دے. کۀ چرې انګريزي حکومت مونږ نور چا سره د اتحاد کولو نه بندوي نو کوم شيزونه چې زمونږ په حاجت دي هغه دې مونږ ته بغير زمونږ د ازادئ د اخستلو نه راکړي ګني نو مونږ به ازاد يو چې هر چا سره مو زړۀ غواړي هغۀ سره به اتحاد وکړو.

د هندوستان د حفاظت دپاره کوم اهميت چې هرات او غوريان لرلو هغه يار محمد خان ته په ښۀ شان سره معلوم وۀ. هغه په دې هم ښۀ واقف وۀ چې يو طرف ته روس او بل طرف ته انګريزان په هرات کښې خپل اثر پيدا کول غواړي او هر يو د خپل غرض حاصلولو دپاره لوے لوے رقمونه لګولو ته تيار دے چنانچه يار محمد خان د دې دواړو حکومتونو د رقابت نه پوره پوره فائده اخستل غوښتل نو کله به هغۀ فيرنګيانو سره ملګرے شو او کله ايران سره ولې د هرات ازادي نۀ هغۀ فيرنګيانو ته او نۀ ايران ته حواله کولو ته تيار وۀ نو چې څۀ وخت ميجر ټاډ د يار محمد خان مطالبات نامنظور کړل نو هغۀ خپل ورور شير محمد خان د محمد شاه دربار ته د ماجب اخستو دپاره وليږلو او د ټاډ او د يار محمد خان سياسي تعلقات پريکړې شول. او ميجر ټاډ د هرات نه د رخصتيدو فيصله وکړه. د ميجر ټاډ په تلو باندې د يار محمد خان لاسونه د فيرنګيانو د بند نه ازاد شول او اوس هغۀ د ټولو نه وړومبے په هرات کښې د انګريزانو د ډلې خوړولو کار په لاس کښې واخستو چنانچه هغۀ هغه ټول سرداران او مشران ونيول چې ميجر ټاډ سره به ئې د هغۀ برخلاف سازشونه کول او د هغوي ټول مال و دولت ئې تالا کړو. يواځې د هرات د قاضي محمد حسن نه هغۀ د دريو لکو روپو مال و اسباب لوټ کړو او بيا ئې هغه پخپله هم ګرفتار کړو. ميجر ټاډ خوارلس سوه پونډه يار محمد خان له د هغۀ د خلاصي دپاره ورکړل او دغه شان ئې هغه د مرګه خلاص کړو.

د غوريانو په قلعه باندې خو يار محمد خان د انګريزانو د خواهش مطابق فوځ کشي ونکړه مګر فيرنګيانو ته دا خبره بدستور ډيره ناګواره وه چې په غوريان باندې دې د ايران

قبضـه وي ځـکـه چې دا قلعه د هرات فتح کولو کُنجي ګڼلې شوه. چنانچه هغوي ډير زور په ايـران بـانـدې واچولو او اخر کار ايران دا قلعه شاه کامران ته پريښوده او د دې په بدل کښې انـګريزانو د کرک جزيره چې د هرات د محاصرې په دوران کښې په هغې باندې فيرنګيانو ، په ايران باندې د دباؤ اچولو دپاره قبضه کړې وه واپس ايران ته ورکړه.

لارډ آکـلـيـنـډ چـې د دې نـه خبـر شـو چـې ميجر ټاډ ناکامياب او ناراض د هرات نه رخـصـت شـو نـو هـغـه په دې خبره سخت دلګير شو او ميجر ټاډ ته ئې د ميکناټن په ذريعه يو خـط واستـولـو چـې ميجر ټاډ د پوليټکل کار دپاره ناموزون او نالائق دے او په دې سبب دې هغه خپلې رجمټ ته په بې عزتۍ واپس شي.

حـقـيـقـت هم دا دے چې ميجر ټاډ يار محمد خان سره د هوښيارتيا او د دانشمندۍ نه کار نۀ وۀ اخستې په ځاے د دې چې هغۀ يار محمد خان سره په نيک سلوک او په ديانتدارۍ د انـګـريزانو دوستي قائم کړې وے هغۀ د يار محمد خان د تباهۍ او د هرات د ازادۍ اخستلو کـوشـش کښې وۀ. او هغۀ ته ئې د هرات په سردارانو کښې په رشوتونو او په پټو پټو ماجبونو ورکـولـو ډيرې خطرناکې پرې جنبې پيدا کړې. نتيجه دا شوه چې يار محمد خان د فيرنګيانو پـه ارادو او خاص طور سره د ميجر ټاډ په ديانتدارۍ باندې سخت بدګمانه شو. د دې نه پس ميـجـر ټـاډ د توپخانې په رجمټ کښې شامل شو او په 1845ء کښـې سکهانو سره په جنګ کښې په ګولۍ ولګيدو او مړ شو.

ميـجر ټاډ چې څۀ وخت د قندهار نه هرات ته په سفارت روانيدو نو هغۀ ته دا هدايات هـم شـوي وو چـې تۀ د وسط ايشيا واليانو سره يعنې امير بخارا او خان خيوا سره هم انګريزي تعلقات قائم کړه. دا تعلقات ځکه ضروري ګڼلي شوي وو چې انګريزانو په افغانستان باندې د قبـضې کولو باوجود روس ته د مداخلت يو دريم ديوال جوړول غوښتل او د هغوي دا منشا وه چې اوس په وسط ايشيا کښې د نورو فتوحاتو نه بند کړې شي. او د هغۀ سرحد د افغانستان د سرحد نه ډير لرې پاتې شي. چنانچه د دې غرض دپاره هغوي د بخارا، خيوا او د قوقند واليانو سره دا سـمـجهـوتـه کـول غـوښتل چې هغوي دې د روس د پيشقدمۍ مقابله وکړي. په دې ورځـو کښـې د خيوا د اخستو دپاره د بهانې جوړولو په غرض زار روس دا اعلان کړې وۀ چې ډير روسي رعايا په خيوا کښې په طور د غلامانو دا وخت بنديوان دي او ډيرې روسي تجارتي قـافـلې د خيوا په علاقه کښې د حاکم خيوا په ايما سره لوټ شوي دي او چونکې الله قلي خان حاکم خيوا په رضا نۀ خو د دې غلامانو ازادولو ته تيار دے او نۀ د آئنده دپاره د روسي قافلو د حـفـاظت ذمه واري په خپل سر اخلي نو په دې وجه زار روس په دې مجبور دے چې د خيوا په عـلاقه باندې حمله وکړي او هغه د خپلې ټولې علاقې نه محروم کړي. چنانچه روس په خيوا بـانـدې د فـوځـي پيشقدمۍ اراده وکړه. د روس دې فوځي پيشقدمۍ د انګريزانو په سياسي

حلقو کښې يو هيبت پيدا کړو او سمدستي ئ دا کوشش شروع کړو چې خان خيوا ته د دې ترغيب ورکړي چې هغه روسي غلامان فوراً ازاد کړي او د روس د مخې نه هغه بهانه لرې کړي چې د کومې په وجه هغه په خيوا باندې د حملې کولو نيت کړے دے.

دې خوا د کال 1840ء په ژمي کښې روسي جرنيل پيروفکي د اورنبرګ نه د شپږو زرو پياده او لسو زرو اوښانو سره د خيوا د خان برخلاف را روان شو. د خيوا د ملک ډيره علاقه بې آب ده او د يو لوے فوځ دپاره په هغې کښې د خوراک څښاک ډير سخت تکاليف پيښيږي. علاوه د دې نه په دې علاقه کښې يخني هم ډيره سخته وي مگر روسي فوځ د دې ټولو مشکلاتو په ډيره اعلیٰ پيمانه انتظام وکړو. مگر اتفاق داسې وشو چې په دې کال باندې يخني د نورو کلونو په نسبت ډيره زياته پريوته. او بيشانه ډيره واؤره ووريدله. روسي فوځ لا د خيوا حدودو ته هم نۀ وۀ رارسيدلے چې د هغوي بيشماره اوښان او څو زره سرې د يخنی دلاسه هلاک شول. او روسي جرنيل په واپس کيدو باندې مجبور شو.

د قدرت دې کارنامې د انگريزانو زړۀ د څۀ وخت دپاره په قلاره کړو مگر هغوي سره دا ويره هم هغه شان په زړۀ کښې پرته وه چې شايد مخې کال له د دې نه يو زيات منظم او په سامان باندې پُر فوځ په خيوا حمله وکړي. پس ميجر ټاډ هرات ته رارسيدو سره قاضي محمد حسن خيوا ته په دې غرض وليږلو چې تۀ په خپل اثر رسوخ خان خيوا په دې باندې راضي کړه چې هغه روسي غلامان ازاد کړي. چونکې ايران هم هغه شان د روس د اثر لاندې وۀ او د اُزبکو برخلاف د محمد شاه، شاه ايران هم دغه شکايت وۀ چې هغوي د ايران په علاقه کښې ډاکې اچوي او عام رعايا په طور د مريانو د خرڅ دپاره تښتوي. د دې دپاره د فيرنگيانو دا هم خطره وه چې کۀ چرې روس مخې کال له په خيوا باندې د قطب نه پيشقدمي وکړه نو ايران به د هغۀ په امداد کښې د سهيل نه ضرور پيشقدمي وکړي. بس ايران سره خو هغوي دا چل وکړو چې هغۀ ته ئ يو بلوچ سردار آغا خان ولمسولو او هغۀ په کرمان باندې يوه ښه مضبوطه حمله وکړه او دغه شان محمد شاه په خپلو خولو کښې ډوب شو. د محمد شاه قريباً يو کال آغا خان سره په جنگونو کښې تير شو او خيوا طرف ته ئ هډو خيال ونۀ شو. قاضي محمد حسن د څۀ معمولي مشکلاتو نه پس د خان خيوا او انگريزانو ترمنځه د ښو تعلقاتو په قائمولو کښې کامياب شو او يوه ابتدائي عهدنامه ئ الله قلي خان سره د انگريزانو د طرفه وکړه. او بيا واپس هرات ته راغلو. د دې نه پس ميجر ټاډ کپتان ايبټ د مکملې عهدنامې دپاره خيوا ته وليږلو. چنانچه الله قلي خان دا پوخ اقرار وکړو چې زۀ به ټول روسي غلامان ازاد کړم او آئنده به انگريزانو سره د دوستۍ تعلقات قائم ساتم. د دې نه پس کپتان ايبټ د ميجر ټاډ د هداياتو مطابق د استراخان په لوري روان شو چې هغه قافله را ازاده کړي چې کومه روسيانو په 1833ء کښې د خان خيوا د روسي غلامانو د ساتلو په بدل کښې په طور د

بوتې ايساره کړې وه. او لا هم هغه شان بندي وه. کپتان ايبټ د ډېرو تکليفونو او مشکلاتو نه پس قريب قريب د روس سرحد ته ورسيدلے وۀ چې په هغۀ او د هغۀ په محافظې دستې د اُزبکو يو ټولې حمله وکړه او هغه ئ گرفتار کړو. او دا ټول کار نيمگړې پاتې شو. په دې اثنا کښې هرات ته خبر راغے چې کپتان ايبټ د اُزبکو ډاکوانو د لاسه قتل شو. ميجر ټاډ سمدستي لفټيننټ شکسپير سره د قاضي محمد حسن بيا خيوا ته د هغې کار دپاره وليږلو چې د کوم دپاره ايبټ تلے وۀ. لفټيننټ شکسپير چې خيوا ته ورسيدو نو هغۀ ته د اخونزاده چې د قاضي محمد حسن زوے وۀ د خلې نه معلومه شوه چې کپتان ايبټ ژوندے دے. ميجر ټاډ د دې نه ډير وړوميے د کپتان ايبټ د امداد دپاره او د هغۀ د راخلاصولو دپاره اخونزاده سره د يو زر بُتکو استولے وۀ. چنانچه اخونزاده د ډير تلاش او د وړدو وړدو مزلو نه پس کپتان ايبټ د ډاکوانو د لاس نه راخلاص کړو او کپتان ايبټ په خپله لاره استراخان ته لاړو او اخونزاده واپس خيوا ته.

د لفټيننټ شکسپير او د الله قلي خان په منځکښې د روسي غلامانو د ازادئ په متعلق ډيره زر فيصله وشوه ځکه چې محمد حسن قاضي او کپتان ايبټ هغۀ ته لار صفا کړې وه. د دې خبرو په دوران کښې الله قلي خان شکسپير ته ووئيل چې هر کله انګريزان زما د ملک نه دومره لرې دي نو بيا څۀ وجه ده چې هغوي ما سره د تعلق قائمولو دومره خواهشمند دي. شکسپير ورته په جواب کښې ووئيل چې د هندوستان وسيع ملک زمونږ په قبضه کښې دے. دا زمونږ يو لوے باغ دے او مونږ سره دا فکر دے چې هسې نه چې مونږ باندې روس د دې طرف نه ناساپه حمله وکړي نو مونږ د دې باغ نه ديوال تاوهو. دا ديوال د خيوا، بخارا، هرات او د کابل علاقې دي. د دې سوال نه د خيوا د خان مراد دا وۀ چې هسې نه چې د روس نه د ځان ساتلو په بهانه فيرنګيان لکه د افغانستان زما نه هم ملک واخلي. بهرصورت د الله قلي خان په دې جواب تسلي وشوه او شکسپير سره ئ د پخې عهدنامې کولو خبرې شروع کړې. خان خيوا هغۀ ته ووئيل چې زۀ به روسي غلامان ازاد کړم چې زار روس زما قافله راپريږدي. مګر شکسپير د شلورو زرو او شلورو سوؤ يو هنډۍ د قاضي محمد حسن په ذمه وارئ ورکړه چې کۀ روسيانو د خيوا قافله را ازاده نۀ کړه نو انګريزان به تاله د دې هنډۍ رقم په تاوان کښې درکړي. په دې خبره د فريقينو په منځ کښې فيصله وشوه او شکسپير شلور سوه شليريشت تنه روسيان غلامان راټول کړل او په اوښانو ئ ځان سره سوارۀ د روس سرحد طرف ته روان کړل. لږه موده پس شکسپير استراخان ته سره د روسي غلامانو ورسيدو او د هغۀ په رسيدو روسيانو د خيوا قافله ازاده کړه او دغه شان کومه بهانه چې زار په خيوا باندې د پيشقدمۍ دپاره جوړه کړې وه هغه لرې شوه. شکسپير بيا د استراخان نه اورنبرګ او د اورنبرګ نه سينټ پيټرزبرګ (چې اوس ورته لينن ګراډ وائي) د روس

دارالسلطنت ته لاړو. زار روس په ظاهره د هغهٔ ډير قدر وکړو او خپل حکومت هغهٔ له د دې خدمت په عوض کښې د سر خطاب ورکړو.

په دې معامله لا ډيره موده نهٔ وه تيره چې زار روس خان خيوا ته ايران ولمسولو او ايران د خان خيوا نه مطالبه وکړه چې د ايران څلويښت زره تنه رعايا ستا په ملک کښې غلامان دي هغوي سمدستي ازاد کړه. الله قلي خان په جواب کښې ايران ته ووئيل چې دا ايراني غلامان د خيوا خلقو زيات تر د ترکمانو نه د خيوا د علاقې نه بهر په بيعه اخستي دي کهٔ چرې زهٔ تاته دا غلامان حواله کړم نو زهٔ د ترکمانو نه د هغوي قيمت واپس نشم اخستې. او علاوه د دې نه په دې غلامانو کښې ډير کسان اوس ازاد شوي دي او هغوي ودونه کړي دي او ځان له ئې کاروبار پيدا کړے دے کهٔ چرې زهٔ دا دومره لوے تعداد د غلامانو شهنشاه ايران ته واپس کړم نو يقيناً به زما رعايا زما برخلاف بغاوت وکړي. د روس اصلي مدعا د خيوا لاندې کول وو. او د فيرنګيانو دا کوشش وهٔ چې روس د خپلې علاقې نه يو قدم په ترکستان کښې راوړاندې نشي. روس به هميش په ترکستان کښې د رامخکښې کيدو څهٔ نه څهٔ بهانه لټوله. او فيرنګيانو به د هغې د ورکولو کوشش کولو. نو هرکله چې الله قلي خان د ايران مطالبه نامنظوره کړه نو ميکناټن کپتان کنولي د کابل نه خان خيوا له د دې معاملې د فيصله کولو دپاره وليږلو. کپتان کنولي سره الله داد خان پوپلزے د شاه شجاع د طرفه په طور د سفير ملګرے شو. کنولي تر ډيرې مودې پورې د الله قلي خان په دربار کښې پاتې شو مګر هغه په خپلو کوششونو کښې کامياب نشو. اخر کنولي د خيوا نه رخصت شو او د قوقند په طرف روان شو. ميکناټن چې په خيوا کښې د هغهٔ د ناکاميابی نه خبر شو نو کنولي ته ئې وليکل چې د خيوا او قوقند په منځکښې د آمدورفت د لارې پوره تحقيقات وکړه او ځان قوقند ته ورسوه. کنولي د شپږو هفتو د مزل کولو نه پس قوقند ته ورسيدو. امير قوقند محمد علي خان د هغهٔ ډير شاندار استقبال وکړو او د دې په عوض کښې کنولي هغهٔ ته او د هغهٔ د دربار سردارانو ته او د هغهٔ اکثر افسرانو ته ډير بيش بها شالونه او ډيره اعلیٰ وسله په طور د تحفې ورکړه. کنولي درې مياشتې په قوقند کښې پاتې شو او دا شان په ارت لاس باندې ئې د هغه ځاے لويو لويو خلقو ته روپۍ او تحائف ورکړل چې د انګريزانو د طاقت او دولت يو لوے نوم په هغه علاقه کښې پيدا شو. امير قوقند محمد علي خان ځان په کال 1839ء کښې د امير نصر الله خان امير بخارا باجګزار تسليم کړے وهٔ. د قوقند او د بخارا د اميرانو په منځکښې په دې باجګزاری ډير جنګونه شوي وو او اخر د ډيرو جنګونو نه پس محمد علي خان امير بخارا سره يوه عهدنامه کړې وه او د هغهٔ مشري ئې په ځان باندې تسليم کړې وه. څهٔ وخت چې کپتان کنولي قوقند ته راغلو نو محمد علي خان ته فيرنګيانو د دوستی نه دومره طمع پيدا شوه چې هغهٔ د امير بخارا د باجګزاری نه انکار وکړو. امير بخارا هر چند چې دا

کوشش وکړو چې زمونږ په منځکښې دې متنازعات په صلح صفایي سره فیصله شي مګر محمد علي خان د خپلې عهدنامې نه مخ واړولو. نتیجه دا شوه چې کپتان کنولي لا په قوقند کښې وۀ چې امیر بخارا په قوقند باندې د حملې کولو دپاره فوځي تیارۍ وکړې.

په قوقند کښې د کنولي د موجودګۍ په وجه دامیر بخارا قدرتاً داشک پیدا شوچې محمدعلي خان ماته کنولي د خپل حکومت په ایما لمسولے دے. چنانچه نصر الله خان اوس دا کوشش شروع کړو چې په څۀ شان کپتان کنولي پخپله پنجه کښې راولم. چنانچه د امیر بخارا په ترغیب او په وینا باندې کرنل ستهارټ چې په دې ورځو کښې په بخارا کښې قیدي وۀ کپتان کنولي ته یو خط ولیکلو چې تۀ ضرور بخارا ته د نصرالله خان د ملاقات دپاره راشه. ځکه چې د هغۀ دا خواهش دے چې فیرنګیانو سره رابطۀ اتحاد قائمه کړي. چونکې کرنل ستهارټ پخپله د ډیرو کوششونو باوجود د امیر بخارا او د فیرنګیانو په منځکښې د عهدنامې د کولو په کار کښې ناکامیاب شوے وۀ له دې کبله کنولي دا خیال وکړو چې کۀ چرې زۀ د امیر بخارا د دوستۍ په حاصلولو کښې کامیاب شوم نو یو خو به دا زما د ډیرې لویې نیک نامۍ باعث شي او بل به روس ته د ترکستان درې لوے لوے طاقتونه یعنې خیوا، قوقند او بخارا په مقابله کښې یو ځاے کړم. پس اګر چې د قوقند خان هغه بخارا ته د تلو نه ډیر منع کړو مګر هغۀ د هیچا خبره وانۀ وریده او کنولي بخارا ته روان شو. لس ورځې پس هغه بخارا ته راورسیدو او اګر چې امیر بخارا هغۀ سره څۀ ډیر په عزت پیش نۀ شو مګر هغۀ د قوقند او د بخارا د امیرانو په منځکښې څۀ د صلح خبرې اترې وکړې. او چونکې دې خبرو ته به امیر بخارا غوږ ایښودلو په دې سبب د کنولي په هغۀ باندې مکمل اعتبار پیدا شو. په دې ځاے کښې اوس مونږ د کرنل ستهارټ مختصر حالات بیانوؤ.

لوستونکو ته به یاد وي چې کرنل ستهارټ د سر جان میکنیل د طرفه په جولائي 1838ء کښې څۀ وخت چې ایرانیانو د هرات محاصره کوله یو الټي میټم شاه ایران ته د دې مضمون وړے وۀ چې کۀ چرې شاه ایران سمدستي د هرات محاصره نۀ پریږدي نو انګریزان به په ایران باندې د جنګ اعلان وکړي. دا به هم د دې تاریخ لوستونکو ته یاد وي چې د دې نه پس شاه ایران د هرات محاصره پریښوده او کرنل ستهارټ هرات ته میجر پوټنګر له راغے. په هرات کښې د ستهارټ او د یار محمد خان سخت مخالفت پیدا شو او ستهارټ د هرات نه د سر جان میکنیل په حکم بخارا ته روان شو. د سر جان میکنیل د هغۀ بخارا ته د لیږلو نه دا مطلب وۀ چې هغه امیر نصرالله خان ته د دې خبرې ترغیب ورکړي چې تۀ سره د خان خیوا او د نورو تاتاري خوانینو د روس برخلاف په خپله کښې او انګریزانو سره متحد شه.

د کرنل ستهارټ د راتلو نه چې امیر نصر الله خان خبر شو نو هغۀ یوه لویه رساله سره

د یو مهماندار د هغهٔ استقبال دپاره ولیږله. او د خپل وزیر په کور کښې ئ کوز کړو. ستهډارټ د هغې مغرور او متکبر فیرنګیانو نه وهٔ چې د ایشیا ټول بادشاهان او امیران د فیرنګي د پښو مساوي ګڼي. د هغهٔ په زړهٔ کښې دا خیال وهٔ چې چونکې زهٔ فیرنګے یم او د سر جان میکنیل د طرف نه په طور د سفیر راغلے یم دې دپاره پکار دي چې امیر بخارا او د هغهٔ وزیران ماته هروخت لاس په سینه او په تعظیم ولاړ وي. نهٔ خو هغهٔ له لویو لویو بادشاهانو او وزیرانو سره په سیاسي معاملو باندې د خبرو کولو چل ورتلو او نهٔ هغهٔ په خپلې خوش اخلاقۍ او په خوږو خبرو څوک خپل مطلب ته را اړولي شو. د هغهٔ یوه طریقه د کار ایستو صرف دا وه چې په هر چا باندې د فیرنګیانو د طاقت او د زور رعب داب قائم کړي. یار محمد خان وزیر هرات سره هم په دې وجوهاتو د هغهٔ ورانه شوې وه. تر دې پورې چې یار محمد خان هغه د هرات نه په زور ایستے وهٔ. اګر چې ستهډارټ یو ډیر محب وطن او مضبوط سړے وهٔ مګر د خپلې بد خویۍ، تندمزاجۍ او د متکبرانه رویې نه د هر قسم پولیټکل کار کولو قابل نهٔ وهٔ. څهٔ وخت چې هغهٔ د هرات نه د بخارا په طرف د میکنیل په حکم روان شو نو یار محمد خان د ستهډارټ د محافظې دستې یو سپاهي له د امیر نصرالله خان په نوم یو خط ورکړو چې په هغې کښې یار محمد خان د ستهډارټ دا ټول خویونه او خصلتونه په تفصیل سره بیان کړي وو.

دا هم بیانیږي چې په دې خط کښې یار محمد خان امیر بخارا ته لیکلي وو چې ستهډارټ یو خطرناک مخبر، پره جنبه باز او ضدي سړے دے. د دریو ورځو د قیام نه پس کرنل ستهډارټ ته د امیر نصر الله خان حکم راغے چې تهٔ زما دربار ته د بخارا چارسو ته چې هغې نوم ریګستان وهٔ د رواج په مطابق پیاده راشه. د بخارا په ښار کښې دا رواج وهٔ چې د غیر مذهب سړے به دننه په بازار کښې په اس سور نهٔ ګرځي. او د ټول یورپ د حکومتونو افسرانو او تاجر پیشه خلقو د دې زوړ رواج قدر کړے وهٔ. او هیچرې ئ هم د هغې د ماتولو کوشش نهٔ وهٔ کړے. مګر ستهډارټ دا ووئیل چې زما دپاره ریګستان ته پیاده تلل زما بي عزتي ده. او زهٔ په اس سور دربار ته ځم. د بخارا دا هم رواج وهٔ چې په ریګستان کښې به بغیر د امیر د خپل ځان نه بل هیڅوک هم په اس سور نهٔ راځي. امیر نصر الله خان چې د ستهډارټ د دې جواب نه خبر شو نو سخت ناراض شو ولې هغهٔ د صبر نه کار واخستو او ستهډارټ په خپله وردۍ کښې په ډیر شان سره په اس سور ریګستان ته راغے. د ښار په خلقو کښې د ستهډارټ په دې ناجائز جرأت قسماقسم نکته چینۍ وشوې او دا ئ د امیر یوه ګوته سپکاوے وګڼلو. د ستهډارټ د رارسیدو نه لږ ساعت پس د بګلونو او د باجو اواز راغے او اواز وشو چې امیر تشریف راوړو. سټهډارټ په ځاے د دې چې د یو خودمختار او ازاد حکومت فرمانروا ته په خوش خلقۍ کوز شوے او د هغهٔ تعظیم ئ کړے وے نو ستهډارټ پښې په

رکابونو کښې ښې نيغې کړې او صرف يو فوځي سلام ئ امير ته وکړو. د خپل ټول حکومت په دوران کښې د امير بخارا هيچا هم په داسې عامو خلقو کښې بې تعظيمي او بې ادبي نۀ وه کړې. هغۀ ستډارټ ته په ډير متانت او سنجيدګۍ سره ډير ساعته پورې وکتل او په خاموشۍ سره د هغۀ نه مخکښې تير شو. يو څو منټه پس امير نصرالله خان ستډارټ ته خپل يو دربان وليږلو چې تۀ زما د راتلو په وخت کښې د اس نه ولې کوز نۀ شوې. ستډارټ د ډير غرور په لهجه کښې دربان ته ووئيل چې د اس نه کوزيدل زما د ملک رواج نۀ دے. مګر دربان هغۀ ته ووئيل چې زمونږ د ملک رواج خو دے. ستډارټ له دا خيال پکار وۀ چې دا وخت هغه په بخارا کښې وۀ نه چې په لندن کښې. مګر هغۀ د دربان په جواب کښې ووئيل چې زۀ هيچرې هم بل څۀ نشم کولے. په دې باندې دربان ووئيل چې ښه ده د امير تسلي ده تۀ اوس د هغۀ محل ته لاړ شه. په دې ستډارټ دننه محل ته په احاطه کښې داخل شو او د شاهان مشرق د رواج په مطابق يو دربان هغۀ ته رانزدې شو چې زۀ ستا د پيژندګلو کولو دپاره د امير نه ستا د طرف نه اجازت غواړم. دې رسم ته به ئ په بخارا کښې "عرض بندګاني" وئيل. څۀ وخت چې ستډارټ د عرض بندګاني نوم واوريدو نو هغه ډير په قهر شو او وې وئيل چې دا الفاظ زما دپاره د هتک او د بې عزتي دي. حالانکې دا بالکل غلطه وه. په شاهي رسومو کښې دا الفاظ بالکل د بې عزتي نۀ دي بلکې ټول انګريزان ئ هم د خپل بادشاه دپاره استعمالوي. په دې خبره هم امير نصرالله خان ضبط وکړو او په ښکاره ئ څۀ ونۀ وئيل. د بخارا او د نور شاهان مشرق يو بل رواج دا وۀ چې څۀ وخت به په دربار کښې څوک هغۀ ته پيش کيدل نو دوؤ کسانو به هغه سرے د متو نه نيولے وۀ غالباً چې د دې رواج مدعا دا وه چې هسې نه څوک ناساپه د ملاقات په دوران کښې په بادشاه باندې حمله وکړي. دا هم په ټول مشرق کښې قاعده وه چې د ملاقات نه به وړومبے د هر چا تلاشي اخستې شوه. د دې دپاره چې چا په پټه وسله په جامو کښې ځان سره دربار ته نۀ وي راوړې. او په هغې په بادشاه باندې حمله ونکړي. څۀ وخت چې ستډارټ د بادشاه د ملاقات دپاره هغۀ ته وروړاندې شو نو د دستور مطابق دوؤ کسانو هغه د متو نه ونيولو مګر ستډارټ د امير په موجودګۍ کښې په زور د هغوي نه ځان خلاص کړو. امير بخارا د ستډارټ د دې بيل بيل کار نه خبر وۀ او سخت برافروخته وۀ مګر چونکې ستډارټ ځان د حکومت برطانيه سفير ظاهر کړے وۀ له دې کبله هغۀ د لوې صبر نه کار واخستو او د هغۀ د سفارت د درجې خيال ئ وساتلو او خاموش پاتې شو. په ټوله دنيا کښې دا رواج دے چې هر کله يو بادشاه له د بل بادشاه سفير راشي نو د هغې سفير د ځان او د مال ټوله ذمه واري په هغه بادشاه وي او هيچرې هغه بې عزتي او سپکاوي ته نۀ پريږدي. د دې نه پس د دربار يو لوے افسر راوړاندې شو او د ستډارټ جامو له ئ هيله ګوتې وروړې وے چې دۀ سره څۀ وسله خو نشته نو ستډارټ هغۀ له يو داسې سوک ورکړو

چې هغه ئ په زمکه راوغورځولو. په لوي دربار کښې د ستډارټ دا بې ادبي هم امير بخارا صرف د ستډارټ د سفيرى د عهدې په سبب په ډير تحمل وزغمله او په ظاهره ئ د هغهٔ نه د خفگان اظهار ونهٔ کړو. د دې نه پس ستډارټ نصر الله خان ته ور وړاندې شو. نصر الله خان د دستور مطابق د الله اکبر الفاظ د خلې نه وويستل او د ستډارټ نه ئ د سر جان ميکنيل هغه خط واخستو چې کوم ستډارټ ځان سره راوړې وهٔ. امير نصرالله خان چې څهٔ وخت د دې خط مضمون ولوستو نو ستډارټ ته ئ ووئيل چې تهٔ خو باقاعده مقرر شوے سفير نهٔ ئ. ځکه چې سر جان ميکنيل پخپله په ايران کښې د خپل حکومت د طرف نه سفير مقرر شوے دے. او تهٔ دې سفير ما له را استولے ئ. يو سفير د بل خودمختار حکومت له دا شان سفير نشي استولے چې هغه څهٔ خاص عهدنامه يا نورې سياسي خبرې اترې وکړي شي. نو تا له پکار دي چې تهٔ د انگلستان د ملکې د طرفه د خپلې تقررى سند ماته پيش کړې. زهٔ يو خودمختار بادشاه يم دا زما بې عزتي ده چې زهٔ د يو سفير ماتحت ملازم سره خبرې اترې وکړم. ستډارټ پخپل مخصوص انداز کښې هغهٔ ته په جواب کښې ووئيل چې ميکنيل هم د ايسټ انډيا کمپنى سفير دے او د دې کمپنى د طرف نه هغهٔ د ايشيا نورو بادشاهانو سره معاهدې کړي دي نور ئ ورته دا ووئيل چې د کمپنى ډير لوے طاقت دے او زهٔ نهٔ پوهيږم چې په داسې معمولي خبرو باندې تهٔ څهٔ له اعتراض کوې. ځکه چې کمپنى سره په تعلقاتو او اتحاد قائمولو کښې ستا هم فائده ده او هم عزت. امير نصرالله خان د دې جواب کښې ووئيل چې د روس شهنشاه زار نکولس ما سره خط و کتابت خپله بلاواسطه کوي او په دې کښې هغه څهٔ سپکاوے نهٔ گنڼي. زار روس د ملکه وکټوريه نه په هيڅ شان په طاقت کښې کم نهٔ دے. کهٔ چرې هغه ما سره د مساوات سلوک کوي نو هيڅ وجه نشته چې ملکه وکټوريه دې ولې ما سره د مساوات سلوک ونکړي. کهٔ چرې دا وخت تا سره د خپلې ملکې د لاس خط نهٔ وي نو تهٔ خپل ملک ته خبر وليږه او لکه څرنگ چې درته زهٔ وايم دا شان خط حاصل کړه. او اوس في الحال کهٔ چرې تاسره د گورنر جنرل هندوستان خط وي نو هغه ماته پيش کړه. ستډارټ په جواب کښې ووئيل چې ما سره د گورنر جنرل خط نشته زهٔ صرف د سر جان ميکنيل د طرفه راغلے يم او هغهٔ ته ايسټ انډيا کمپنى دا اختيار ورکړے دے چې کمپنې به تا له يو خاص رقم په طور د ماجب درکوي. په شرط د دې چې کهٔ چرې تهٔ مونږ سره د روس برخلاف اتحاد کوے. په دې باندې امير نصرالله خان د ډير قهر نه مسکے شو او ورته ئ ووئيل چې ښه تاسو ما نه غلام جوړوئ. ښه ده زهٔ به ستاسو خدمت وکړم. ځه زما د مخې نه لرې شه.

اوس امير بخارا ته د يار محمد خان د چيټئ مضمون بالکل درست ښکاره شو. ستډارټ نهٔ خو د رواج مطابق څهٔ تحفې تحائف امير بخارا ته د پيش کولو دپاره راوړې وے

او نۀ هغۀ سره د عهدنامې څۀ سرکاري سند موجود وۀ او سره د دې هغۀ خپل طرز سلوک نه دا ښکاره کړه چې هغه امير بخارا ته په طور د يو حاکم راغلے دے نه چې په طور د يو دوست. پس امير نصرالله خان په دې نتيجه ورسيدو چې ستهارټ واقعي خطرناک مخبر دے او خپل کار په رعب داب او دړکه وباسي. د امير نصرالله خان د صبر کاسه اوس هغۀ ته ډکه شوې وه او هغۀ د هغۀ د غرور او د تکبر ماتولو دپاره د هغۀ د گرفتارۍ حکم وکړو. د دې غرض دپاره هغۀ ته حکم وشو چې تۀ سمدستي د وزير کور ته لاړ شه. هرکله چې ستهارټ د وزير کور ته ورسيدو نو فوراً دولسو تنو راونيولو او په زمکه ئې راواچولو او د لاسو پښو نه ئې وتړلو. اوس د ستهارټ سترگې پرانستې شوې او ورته معلومه شوه چې زۀ د هندوستان د يو راجه په رياست کښې نۀ يم بلکې د يو ازاد خودمختار او مطلق العنان بادشاه په حکومت کښې يم. وزير توره ايستلې د هغۀ د سر دپاسه ولاړ وۀ خلۀ ئې د زگونو نه ډکه وه او په ډير قهر او غيظ و غضب ئې هغۀ ته وئيل "اے کم بخته مخبره، اے کافره سپيه تۀ دلته د انگريزانو د طرف نه د دې دپاره راغلې ئې چې بخارا هم د کابل پشان تاسو واخلئ. په دې کښې به هيچرې کامياب نۀ شے، زۀ به دې قتل کړم." بيا وزير خپلو نوکرانو ته حکم وکړو چې بو ئې څئ. نوکرانو هم دغه شان لاس او پښې تړلې د پوليس مشر افسر له بوتلو. ستهارټ د پوليس افسر ته ووئيل چې کۀ چرې تاسو په بخارا کښې زما په پاتې کيدو خفه ئې نو ماته اجازت راکړه چې زۀ لاړ شم. د پوليس افسر هغۀ ته په جواب کښې ووئيل چې زۀ به امير ستا د دې سوال نه خبر کړم. ولې اوس زۀ تا د هغۀ په حکم په "سياه چاه" کښې اچوم. بيا ستهارټ پوليس بوتلو او د رسو په ذريعه ئې سياه چاه ته ورکوز کړو. ستهارټ په دې سياه چاه کښې په ډير تکليف او مصيبت دوه مياشتې تيرې کړې او چې څۀ وخت امير نصرالله خان پوهه شو چې د ستهارټ انتهائي نخوت او تکبر له ما شکست ورکړو نو هغه ئې بيا د سياه چاه نه راوويستو. او د مير شب يعنې د پوليس افسر اعلیٰ په کور کښې ئې بنديوان کړو. د دې نه اووۀ ورځې پس هغۀ ته د امير نصرالله خان د طرفه حکم راغلو چې چونکې تۀ مخبر ئې او د مخبر سزا قتل ده د دې دپاره تۀ واجب القتل ئې. ليکن کۀ چرې تۀ مسلمانيږې نو امير به تا ازاد کړي. ستهارټ ته د سياه چاه د قيد په وجه بدني او دماغي دومره تکليفونه رسيدلي وو چې هغۀ خپل مذهب پريښودل او مسلمانيدل قبول کړل. او کلمه ئې ووئيله او باقاعده مسلمان شو. د دې نه پس امير بخارا هغۀ سره ډير د عزت سلوک وکړو او هغۀ له ئې ډير خلعتونه ورکړل. او د استوگنې دپاره ئې ورله يو محل ورکړو. مگر څۀ وخت چې د ستهارټ خپل مصيبتونه هير شول نو هغۀ بيا د عيسائي کيدو اعلان وکړو او وې وئيل چې زۀ په زور مسلمان کړے شوے وم. په دې مرتد کيدو امير هغۀ سره خپل طرز سلوک بدل نۀ کړو مگر هغه به ئې هروخت د نگرانۍ لاندې ساتلو او د بخارا نه به ئې د بهر وتلو اجازت نۀ ورکولو. په دې ورځو کښې د

ستهارټ یو څل تپ محرقه شوه نو شاه بخارا خپل شاهي طبیب د هغهٔ د علاج دپاره واستولو چنانچه د هغهٔ په علاج ستهارټ صحت یاب شو.

د دې نه پس شاه بخارا په څهٔ شان د ستهارټ نه ځان خلاصول غوښتل. دې دپاره هغهٔ ستهارټ ته دا تجویز پیش کړو چې تهٔ زما د طرف نه زار روس ته په طور د سفیر لاړ شه مګر ستهارټ ووئیل چې چونکې ماته د خپل حکومت د طرف نه لا حکم نهٔ دې رارسیدلے چې تهٔ د بخارا نه روان شه له دې کبله زهٔ په دې تجویز عمل کولو ته تیار نهٔ یم. په دې طریقه ستهارټ تر ډیرې مودې په بخارا کښې پاتې شو او اګر چې هغهٔ سره عام سلوک ښهٔ کیدلو ولې دراصل هغه قیدي وهٔ. دې طرف نه انګریزي حکومت د سلطان روم، د زار روس او د خان خیوا په توسط د ستهارټ د خلاصي کوششونه وکړل مګر شاه بخارا هر چا ته څهٔ عذر پیش کړو او ستهارټ ئې ازاد نهٔ کړو. د دې واقعاتو نه لږه موده پس د افغانستان بغاوت پیښ شو او د چارچاپیره علاقو نه د انګریزي فوځونو د شکست خبرونه راغلل.

مونږ وړومبے ذکر کړے دے چې کنولي اول خیوا ته او بیا د خیوا نه قوقند ته په سفارت تلے وهٔ او کنولي لا په قوقند کښې وهٔ چې د امیر بخارا او د قوقند د والي په منځکښې تنازعات پیدا شول. د امیر بخارا دا شک د یقین حد ته رسیدلے وهٔ چې کنولي او ستهارټ دواړه زما په تباهی پسې دي. پس هغهٔ په چل ول کنولي هم بخارا ته راوستو او دې نه پس ئې په قوقند باندې دولس زره سپاهیانو سره پیش قدمي وکړه او قوقند ئې فتح کړو او محمد علي خان وتښتیدو. هر کله چې امیر بخارا واپس خپل صدر مقام ته راغلو نو د کنولي او د ستهارټ نه ئې د بدل اخستو نیت وکړو. په دې ورځو کښې روسي سفیر موسیو ډې بانتینیف بخارا ته د خپل حکومت د طرفه راغلے وهٔ. هغهٔ د ستهارټ او د کنولي په متعلق امیر بخارا ته په ډیر زور تحریرونه ولیکل چې تهٔ دا دواړه انګریزان افسران پریږده مګر امیر هغهٔ ته په جواب کښې ووئیل چې د مخبرانو په سلوک کښې د روس سفیر ته زما په کارونو کښې د دخل ورکولو اختیار نشته. کپتان کنولي او کرنل ستهارت دواړو د خپل قید په ورځو کښې پټ پټ خطونه هم ایران او هم افغانستان ته خپلو افسرانو ته لیږل چې په بخارا باندې فوځي پیشقدمي کول ډیر ضروري دي. دا کوشش هم هغوي کړے وهٔ چې خان خیوا له په بخارا باندې د حملې کولو ترغیب ورکړي. چنانچه دا قسم خطونه د امیر بخارا لاس ته هم راورسیدل او د هغهٔ پوره یقین راغے چې دا دواړه انګریزان مخبران دي. او د دوئ قتلول ضروري دي. کنولي سره چې څومره مسلمانان ملازمان وو تر دې پورې چې الله داد خان چې د شاه شجاع د طرف نه کنولي سره په طور د سفیر ملګرے وهٔ هغوي ټول امیر نصر الله خان ګرفتار کړل. او په سیاه چاه کښې ئې واچول. اخر کار د بیحده تکلیفونو او مصیبتونو برداشت کولو نه پس دا ملازمان امیر بخارا د ملیانو په جرګه او سفارش باندې پریښودل.

مگر باوجود د ایران د خیوا د قسطنطنیه د کابل او د هرات د حکومتونو د سفارشي خطونو نه امیر بخارا نهٔ کنولي پریښودو او نهٔ ستهدارټ او اخر په اوولسم جون 1843ء دا دواړه افسران د امیر بخارا په حکم د مخبری په جرم کښې قتل کړې شو.

## دریم باب

د افغانستان په مطیع کولو کښې د جنرل میکناټن او اخباري نامه نگارانو اختلاف، په دې سلسله کښې د هغهٔ میجر رالنسن ته یو وړد خط لیکل، لارډ آکلینډ ته د افغانستان د واقعاتو نه تشویش پیدا کیدل، د انگلستان په حکومت کښې تبدیلي راتلل، د نوي انگریزي فوځ افغانستان ته روانیدل، د افریدو په انگریزي فوځ حملې، او د سکهانو د فوځ د خیبر نه راتښتیدل، په دې واقعاتو د انگریزانو وار پار خطا کیدل، او د نوي سر نه د فوځي پیشقدمی ارادې ظاهرول.

د افغانستان د کال 42-1841ء د جنګ ازادی نه پس مفصل حال مونږ په وروستنو بابونو کښې ور کړے دے. مگر د هندوستان وائسرائے چې کومې کار روایي ددې جنګ په مقابله کښې وقتاً فوقتاً وکړې او کوم اثر چې د دې جنګ ازادی د هندوستان په گوره او یورپین ابادی باندې په هغه وخت کښې پیدا شوے وهٔ پکار دي چې د هغې هم پوره پوره ذکر وکړې شي. مونږ د جنرل پالک او د جنرل ناټ په کابل باندې د پیشقدمی یو مجمل شان ذکر کړے دے لیکن د دې تاریخ لوستونکو ته دا معلومه ده چې دا دواړه جرنیلان سره د خپلو فوځونو په مشکله د 1842ء د اوړي اخر اخر ته کابل ته راورسیدل. پس دا ضروري معلومیږي چې د دې هم تشریح وشي چې دا کوم مشکلات وو چې د هغو په سبب انگریزي فوځ د هندوستان نه په وخت را ونهٔ رسیدے شو. او د افغانستان انگریزي فوځ ئې د تباهی نه بچ نهٔ کړې شو. دې کښې شک نشته چې په دې باب کښې د بعضې هغې تفصیلاتو دوباره ذکر هم راځي چې کوم په وړومبو بابونو کښې بیان شوي دي. مگر لوستونکي به مونږ ته دا قصور معاف کړي. ځکه چې یو خو به د هغې ذکر د نور مضمون په سلسله کښې ضروري وي او بل دا چې هغه به محض د زړو خبرو زوتول نهٔ وي بلکې څهٔ نا څهٔ نوې خبرې به هم پکښې وي

هرکله چې د افغانستان د قومي بغاوت خبرونه وړومبے ځل لارډ آکلینډ وائسرائے هند ته ورسیدل نو هغه د غمونو او فکرونو د لاسه دومره پریشان او دوجاله شو چې سره د ډیرو مصلحتونو او غور وفکر نه هغه نهٔ پوهیدو چې د افغانستان انگریزي فوځونو ته په څهٔ طریقه امداد واستولے شي چې هغوي د مکملې تباهی نه بچ شي. لکه چې څهٔ رنګ وړومبے

څو څو ځله ذکر شوے دے په اکتوبر 1841ء کښې د میکناټن ټول رپورټونه د افغانستان د اندروني انتظام په حقله ډېر د زړۀ د خوشحالۍ او د تسلۍ وو. هغۀ وائسراے ته لیکلي وو چې د درانو عظیم الشان بغاوت د زمیندارو او د قندهار په علاقو کښې بالکل دباؤ شو. غلجي په امن و امان ناست دي او د کوهستان علاقو هم د څۀ کشمکش نه پس د اطاعت سر ښکته کړے دے. او اوس په ټول ملک کښې د یو سر نه تر بله سره پورۍ امن دے. او هیڅوک نشته چې سر قدرې پورته کړي. دې کښې هم شک نشته چې د دې سرکاري رپورټونو برخلاف په هندوستان کښې د ځنې انګریزي اخبارونو نامه نګارانو څۀ داسې مضامین پخپلو خپلو اخبارونو کښې لیکلي وو چې د هغوي نه د میکناټن د دې رپورټونو تردید کیدلو. مګر هر کله چې مسټر کالون د وائسراے پرائیویټ سکټر میکناټن ته د دې مضامینو حواله ورکړه نو هغۀ په ډېر خفګان هغۀ ته ولیکل چې دا مضامین دروغ دي. بلکې یو ځل هغۀ په دې عدم اعتماد خپله ناراضګي تر دې حده پورې ښکاره کړه چې د استعفیٰ ورکولو اراده ئې ښکاره کړه. د انګریزي اخبارونو دا نامه نګار اکثر فوځي افسران او لوے لوے عهدیداران وو او اګر چې وائسراے د میکناټن د سرکاري عهدې د ذمه وارۍ په سبب مجبور وۀ چې د اخبارونو د دې نامه نګارانو په مقابله کښې ئې د میکناټن په رائې زیات اعتبار کړے وے. مګر حقیقت دا دے چې هم د دې مضمونونو دومره اثر د لارډ آکلینډ په زړۀ باندې وشو چې د 1840ء په ټول کال کښې د هغۀ په زړۀ کښې د افغانستان د واقعاتو متعلق خدشه او ویره پرته وه. د اصلي واقعاتو نه چې کوم به وقتاً فوقتاً په افغانستان کښې پیښیدل په دې دواړو فریقو کښې یو هم انکار نشو کولے ولې فرق په هغې واقعاتو باندې د نتائجو او رائې مرتب کولو کښې وۀ. په هره علاقه کښې چې به د انګریزانو برخلاف بغاوت وشو او هغې له به د یو قومي تحریک رنګ ورکړې شو نو میکناټن به دا خیال کولو چې د هر ملک نه د هغې د ازادۍ د شوکولو په ابتدا کښې دا قسم د بغاوت او د ازادۍ تحریکونه همیش پیدا کیږي. مګر د متواتر شکستونو خوړلو نه پس اخر د هغې ملک وسیدونکي د فرمانبردارۍ او د اطاعت سر په زمکه وغزوي. او خپل ځان ورو ورو محکومیت او غلامۍ سره عادت کړي. د هغۀ دا پالیسي وه چې انګریزان په افغانستان کښې څۀ خو د تورې په زور، څۀ د ملک په خلقو کښې د پرو جنبو جوړولو په ذریعه او څۀ د لویو لویو رشوتونو او ماجبونو او جاګیرونو په وسیله دا قسم قومي تحریکات خوړولې شي. او هر کله چې د څۀ مودې د ناکام کوششونو نه پس پښتنو ته دا معلومه شي چې نۀ فیرنګیان په زور ایستلے شو او نۀ مونږ د هغوي برخلاف په قوم کښې اتفاق او یو والے پیدا کولے شو نو هغوي به پخپله لاچار د مقابلې او د مخالفت لار پریږدي او چار و ناچار به په خپل قسمت او نصیب رضا شي. هغۀ به اکثر شاه شجاع ته وئیل چې د څۀ لږې مودې نه پس به زۀ ټول افغانستان په دوؤ پلټنو باندې مطیع وساتم. د دې برخلاف هم د

دې واقعاتو په بنا د اخبارونو د نمائنده ګانو دا رائ وه چې پښتانۀ د انګريزانو افغانستان ته د راتلو او د شاه شجاع د تخت نشين کولو په اصلي غرض باندې ښۀ پوهه شوي دي. او هغوي د فيرنګيانو د دې ملک نه د ايستلو دپاره د يو عظيم الشان قومي تحريک تجويز کړے دے. او هغوي به تر هغه په قلار نشي تر څو چې هغوي د غير قوم فوځ د خپله ملکه ايستے نۀ وي.

دې کښې شک نشته چې د ميکناټن دا رائ د هندوستاني واقعاتو د تجربې په بنا باندې درست وه. هغۀ به وئيل چې په هندوستان کښې هم دا قسم تحريکونه ډير ځله راوچت شوي دي. مګر د دوؤ دريو شکستونو نه پس هغوي د ټول عمر دپاره بيا سر نۀ دے وچت کړے. چنانچه هر کله چې ميجر رالنسن د قندهار پوليټکل ايجنټ هغۀ ته د هغۀ د رائ برخلاف او د اخبارونو د دې نامه نګارانو رائ سره د اتفاق خيالات يو خط کښې ظاهر کړل نو هغۀ له ډير قهر ورغے او هغۀ ته ئ دا وړد خط په جواب کښې وليکلو:

" I am not going to read you a lecture, first, because when you indited your letter of the 28th ultimo you pleaded guilty to the influence of bile; and secondly, because at the present writing I must own the same impeachment; but I must pen a few ramarks, in the hope of inducing you to regard matters a little more couleur de rose. You say The state of the country causes me many an anxious thought- we may thrash the Durranies over and over again, but this rather aggravates than obviates the difficulty of overcoming the national feeling against is- in fact, our tenure is positively that of military possession, and the French in Algiers, and the Russians in Circassia afford us an example on a small scale of the difficulty of our position. Now upon what do you found your assertion that there is a national feeling against us, such as that against the French in Algiers or the Russians in Circassia? Solely, so far as I know, because the turbulent Durannies have risen in rebellion. From Mokoor to the Khyber pass all is content and tranquility, and wherever we Europeans go we are received with respect, and attention, and welcome. But the insurrection of the Durranies is no new occurrence. The history of the rule of the Barakzais Sardars would show that they were engaged in one continuous struggle with their turbulent brethren. If they were able to reduce them to subjection with their contemptible means, what should we have to fear from them? We have given them something to loose which they had not before, and you may rely upon it that they will be quite enough as soon as they are satisfied (which they ought to be pretty well by this time) of the futility of opposition, provided some means are adopted of preventing Yar Mohammad Khan from carrying on his intrigues. Then, the Ghiljees have been in arms. True. But it would have been unreasonable to suppose that they should surrender their independence without a struggle, and we have now put the bit in their mouths. I do not concur with you as to the difficulty of our position. On the contrary, I think our prospects are most cheering and with the materials we have there ought to be little or no difficulty in the management of the

country.

It is true rest population is exclusively Mohammadan, but it is split into rival sects; and we all know that of all the antipathies the sectarian is the most virulent. We have Hazarahs, Ghijees, Durranies and Qazalbashes, all at a dagger drawn with each other, and in every family there are rivals and enemies. Some faults of management must necessarily be committed on the first assumption of the administration of a new country, and the Durrani outbreak may be partially attributed to such faults, but what, after all, do such outbreaks signify? The modern history of India teems with such instances. There is hardly a district in which some desperate adventurer has not appeared at some time or other, and drawn the entire population after him. The whole province Barily, in 1817, rose against us on a religious war cry. The whole province of Kuttak, shortly afterwards followed the standard of the rebel jugheneda, and we have infinite trubble in quelling the insurrection. Instances of this kind might be infinitely multiplied, and yet we find the effects of such outbreaks are very evanescent. The people of this country are very credulous. They believed any story invented to our prejudice, but they will very soon learn that we are not the cannibals, that we are painted. Mr. Gorman's state was doubtless very melancholy; but are there no assassination in other countries? I read in the Bombay times only this morning an account of a cawalry officer being shot at in the open day in one of our villages. You say, "the infatuated towns people are even beginning now to show there teeth; there have been three cases today of stones thrown from the tops of the houses on sepoy's heads, walking along the street". Certainly our troops can be no great favourites in a town where they have turned out half the inhabitants for their own accommodations; but I will venture to say there is not a country town in England where soldiers are quartered in which similar excesses have not happened. Europeans and native soldiers have traversed the town of Qandahar unarmed; and though it is to be apprehended that their conduct has been occasionally very aggravating, only two assaults have been committed upon them. When I went to Hyderabad in 1810, and for many years after, no Europeans could venture to show himself in the city, such was the state of feelings against us. Look upon this picture and on that. Now I believe the lieges of Hyderabad look upon us as very innocent Kaffirs. You are quite right, I think and directing pattinson to accept the submission of all the rebels, save Akhtar, who may be desirous of coming in. They should be required to furnish security for appearance sake. But these people are perfect children, and should be treated as such. If we put one naughty boy in the corner, the lest will be terrified. We have taken their play-thing, power, out of the hands of the Durrani chiefs, and they are pouting a good deal in consequence. They did not know how to use it. In their hands it was useless and even hurtful their masters, and we were obliged to transfer it to scholars of our town. They instigate the mullahs, and the mullahs

**preach to the people; but this will be very temporary. The evil of it we must have borne with, are abundoned all hope of forming a national army."**

ترجمه : زهٔ تاته ليکچر نهٔ درکوم ځکه چې يوه وجه خو دا ده چې تا پخپله د اتويشتم تاريخ ماه ګزشته د خط ليکلو په وخت کښې د دې جرم اقبال کړے وهٔ چې زهٔ د قهر او غصې د اثر د لاندې وم او بله وجه دا ده چې د دې موجوده تحرير د ليکلو په وخت کښې زهٔ پخپله هم د دې جرم اقبال کوم مګر زهٔ يو څو فقرې ضرور ليکل غواړم په دې اميد چې زهٔ به تا دې خبرې ته مائل کړم چې تهٔ صورت حالاتو ته لږ په ښکلي شکل کښې وګورې. تهٔ وائې چې د ملک حالات دا شان دي چې زهٔ ئې سخت فکرونو کښې اچولے يم. هر څومره چې مونږ په بار بار دراني ووهل مګر په ځاے د دې چې مونږ د ځان برخلاف د هغوي قومي جذبات خوارهٔ کړې وے مونږ هغه نور هم برانګيخته کړل. حقيقت دا دے چې زمونږ موجوده حيثيت د فوځي قبضه کونکو دے. او زمونږ د پوزيشن د مشکلاتو مثال په ورکوتے نمونه باندې په الجيريا کښې د فرانسيانو او په سرکاشيه کښې د روسيانو پشان دے. نو تهٔ اوس دا ماته ووايه چې تهٔ په کومو وجوهاتو دا وائې چې زمونږ برخلاف په دې ملک کښې دا شان قومي جذبات موجود دي لکه چې په الجيريا کښې د فرانسيانو او په سرکاشيه کښې د روسيانو برخلاف دي. صرف له دې کبله (تر څو چې زما علم دے) چې جنګيالو درانو بغاوت کړے دے؟ د موکر نه چې واخلې نو عين تر خيبره په وطن کښې خلق په امن او خوشحال دي. او هرچرته چې مونږ يورپين لاړ شو نو خلق زمونږ قدر عزت او خوش آمديد کوي. مګر د درانو بغاوت څهٔ نوې خبره نهٔ ده د بارکزو سردارانو د حکومت د تاريخ نه به درته معلومه شي چې هغوي دې جنګيالو عزيزانو سره هميش په يوه مسلسله جګړه کښې نښتي وو کهٔ چرې هغوي باوجود د ډير حقير وسائل د دوئ د مطيع ساتلو قابل وو نو مونږ په څهٔ د هغوي نه ويرېږو. مونږ خو هغوي له ځنې داسې څيزونه هم ورکړي دي چې وړومبې هغوي سره نهٔ وو او د هغې په تلو به هغوي خفه وي. او تهٔ يقين ولره چې هغوي به ډير زر خاموش شي. ښو چې څهٔ وخت د هغوي دا تسلي وشي (او اوسه پورې به د هغوي دا ښه تسلي شوې وي) چې د مقابلې کولو هيڅ فائده نشته. په دې شرط چې څهٔ داسې چل وشي چې يار محمد خان په څهٔ طريقه د خپلو سازشونو نه منع شي. بله دا چې غلجو وسله راخستې ده بيشک مګر دا خيال کول بالکل ناجائز دي چې هغوي دې خپله ازادي بغير د مقابلې نه حواله کړې وے. او اوس مونږ د هغوي په خلهٔ کښې ملونے اچولې ده. زهٔ تاسره په دې کښې اتفاق نهٔ کوم چې زمونږ پوزيشن خراب او مشکل دے. بلکې د دې برخلاف زما دا خيال دے چې زمونږ واقعات ډير د زړهٔ د خوشحالي دي او کوم ذرائع چې مونږ سره دي د هغې په موجودګۍ کښې به د دې ملک د انتظام په لاره کښې هيڅ مشکلات نهٔ وي.

په دې کښې شک نشته چې د دې ملک ابادي ټوله د مسلمانانو ده مګر هغه په

ټولو فرقو کښې تقسيم ده. او دا خو مونږه ټولو ته معلومه ده چې په تمامو مخالفتونو کښې د فرقې مخالفت ډير سخت وي په دې ملک کښې هزاره بيل دي، غلجي بيل دي دراني بيل دي او قزلباش بيل دي. او ټول يو بل سره چاړۀ او غوښې ذي. او په هر ټبر کښې پرې او جنبې دي. په هر ملک کښې چې يو نوې انتظام په لاس کښې واخستې شي نو په انتظام کښې څۀ نا څۀ نقص ضرور پيښيږي او د درانو د بغاوت څۀ وجه د انتظام دا نقصانات هم وو. مگر اخر د دې بغاوتونو نه څۀ معلوميږي. د هندوستان موجوده تاريخ کښې ډير دا شان مثالونه موجود دي په مشکله به دا شان ضلع وي چې په هغې کښې څوک نا څوک سرتيز راپاڅيدلے نۀ وي او ټول خلق هغۀ پسې شوې نۀ وي. په 1817ء کښې د بريلي ټوله صوبه زمونږ برخلاف په مذهبي اواز راپاڅيده د هغې نه پس لږ زر د کټک ټوله صوبه د باغي جگبنيډه د جنډې لاندې راجمع شوه او د دې بغاوت په فرو کولو کښې مونږ ته ډير تکليفونه پيښ شول. دا قسم مثالونه په ډير شمار کښې سرے بيانولے شي. ولې سره د دې د دې بغاوتونو اثر د ډيرې لږې مودې دپاره وي. د دې ملک خلق ډير ضعيف الاعتقاد دي. دوئ په هره هغه قصه اعتبار کولو ته تيار دي چې کوم زمونږ برخلاف څوک جوړه کړي ولې دوئ ته به ډير زر معلومه شي چې مونږ دا شان مردم خوارۀ نۀ يو لکه څرنگ چې مونږ نه خلق جوړوي . دې کښې شک نشته چې د مسټر گورمين مرگ ډيره افسوسناک وۀ مگر ولې په نورو ملکونو کښې قتلونه نۀ کيږي څۀ؟ ما خو هلۀ هم نن سحر په بمبې ټائمز کښې د يوې رسالې د افسر قصه ولوستله چې په هغۀ باندې په رڼا ورځې زمونږ په يو کلي کښې ډز وشو. تۀ وائې چې د ښار کم عقلو خلقو د اوسه خپل غاښونه مونږ ته راويستل شروع کړي دي او نن درې څله زمونږ په سپاهيانو باندې ( چې په کوڅو کښې روان وو) د کورنو د سر نه د کاڼو ويشتلو واقعې شوي دي. دا يقيني خبره ده چې زمونږ سپاهيان په يو داسې ښار کښې د چا خوښيدي نشي چې د هغې نيمه ابادي هغوي د خپلې استوگنې دپاره ايستلې وي مگر زۀ به د دې وينا کولو جرأت هم وکړم چې په انگلستان کښې هم دا شان لوے کلي نشته چې په هغې کښې سپاهيان ديره وي. او په هغه ځاے کښې دا قسم زياتی نۀ وي شوې. يورپين او هندوستانيان سپاهيان ډير څله بې وسلې د قندهار په بازار کښې گرځيدلي دي او اگر کۀ کله کله د هغوي رويه ډيره اشتعال انگيز وه مگر په هغوي باندې صرف دوه حملې شوي دي. زۀ چې په 1810ء کښې حيدراباد ته تلے وم نو هغه وخت او د هغې نه هم ډيره موده پس هيڅ يورپين ښکاره په ښار کښې دننه د ښکاره کيدو جرأت نشو کولے . دومره خلق زمونږ برخلاف وو. اوس دې نقشې ته هم وگوره او هغې ته هم. زما په خيال کښې اوس د حيدر اباد ملازمان مونږ ډير بې ضرره کافر گڼي.

زما په خيال کښې تا درست کار کړے دے چې پيټمن ته دې دا هدايات ورکړي دي

چې د ټولو هغه باغیانو اطاعت قبول کړه چې څوک پخپله راتلو ته تیار وي بغیر د اختر خان نه. هغوي له د حاضرۍ دپاره ضمانتونه واخله. ولې دا خلق بالکل ماشومان دي او هغوي سره هم د ماشومانو پشان سلوک پکار دے. چې کۀ چرې مونږ یو شریر هلک په کوټ کښې کښېنولو نو نور به پخپله ویریږي. مونږ د درانو سردارانو نه د هغوي د لوبو څیز یعني اختیار اخستې دے او له دې هغوي شونډې بړوسي بړوسي کوي هغوي د هغې په استعمال نۀ پوهیدل دا د هغوي په لاس کښې یو بې فائدې څیز وۀ بلکې د هغوي د ملک دپاره نقصان وۀ او له دې کبله مونږ مجبور شو چې هغه مونږ خپلو شاګردانو ته حواله کړو هغوي مونږ ته ملیان پاخوي او ملیان خلقو ته وعظ کوي مګر دا ټولې خبرې د یو لږ وخت دپاره دي.

باوجود د میکناټن د دې زړۀ خوشحالونکو رپورټونو د افغانستان اندروني بدامنۍ او د هغې مالي اخراجاتو د لارډ آکلینډ زړۀ د څۀ مودې نه فکرمند کړے وۀ. د بدامنۍ نه علاوه د افغانستان په معاملاتو د هندوستان د غریب رعایا دومره روپۍ خرچ شوے وے او لا هم هغه شان په دې خرچ کښې د کمي راتلو څۀ امید نۀ معلومیدو چې د لارډ آکلینډ په زړۀ کښې هم دا خبره راغله چې آیا د دې بې خلې قوم روپۍ داسې په بې دردۍ لګول بې انصافي او ظلم نۀ دے. ایسټ انډیا کمپنی پخپله د دې لام سخته برخلافه وه بلکې د حکومت برطانیه په اصرار باندې دا جنګ هغوي مجبوراً شروع کړے وۀ. مګر چونکې روپۍ ټولې د هندوستان د خزانې لګیدې په دې وجه د کمپنۍ ډائرکټرانو به متواتر لارډ آکلینډ ته لیکل چې د افغانستان په معاملاتو باندې په خرچ کښې کمے راوستل ضروري دي. پس لارډ آکلینډ پخپله په دې فکر کښې لګیدلے وۀ چې د مالي نقطۀ نګاه نه د افغانستان قضیه دا شان خاطر خواه فیصله کړم چې اخراجات هم کم شي او د حکومت برطانیه پالیسي هم کامیابه شي. هغۀ لا دا فکرونه کول چې په دسمبر 1841ء کښې د افغانستان د ازادۍ د تحریک خبرونه هغۀ ته راورسیدل. چونکې د ډیرې مودې نه د هغۀ زړۀ ناقلاره وۀ دا نوې خبر په هغۀ باندې لکه د تندر راپریوتلو او هغه وارخطا شو. دا ورځې د هغۀ د عهد حکومت اخري ورځې وے او د هغۀ دا خیال وۀ چې کۀ د افغانستان لام کۀ جائز وۀ کۀ ناجائز ولې اوس زما په حکومت کښې هغه ظاهري طور باندې کامیاب شي نو زۀ به ډیر ښۀ په عزت او په ښۀ نوم واپس خپل ملک ته لاړ شم او وروستو چې بیا هر څۀ کیږي زۀ به د هغې ذمه وار نۀ یم. مګر څۀ وخت چې هغۀ ته هم د دغې څیز خبر راغلو چې د کوم نه هغه ویریدلو نو د هغۀ د خفګان او د غم څۀ حد پاتې نشو. کوم حکومت چې وړومبے د دې لام تجویز کړے وۀ هغې په اګست 1841ء کښې استعفیٰ ورکړه او د هغوي په ځاے مخالفه پارټي برسر حکومت شوه. د وړومبۍ ډلې مشر میلبورن وۀ چې هغوي ته به ئې وګز وئیل او د دویمې ډلې مشر پیل وۀ او د دۀ ډله د ټورې په نوم باندې مشهوره وه. ټورې ډله د ابتدا نه د دې لام خلاف وه نو چې کله د افغانستان بغاوت د هغې

حکومت په زمانه کښې وشو چې کوم د اول نه د لارډ آکلینډ د پالیسي او د دې لام نه خلاف وه نو د هغهٔ مشکلات نور هم زیات شول. ځکه چې هغهٔ د خپل حکومت د پالیسي نه برخلاف د افغانستان د دوباره مسخر کولو دپاره په لویه پیمانه څهٔ فوځي کار روائي نهٔ شوه اختیارولے. دیخوا ته د کومو مصیبتونو خبرونه چې هغهٔ ته به روزانه رارسیدل هغه دې حد ته دلخراش او د خفګان وو چې بغیر د یو لوے فوځي امداد د لیږلو نه هغهٔ سره بله لار نهٔ وه. دا فکر هم هغهٔ سره پیدا شو چې کهٔ چرې یو ځل په ایشیا کښې دا ثابته شوه چې د انګریزي فوځ او د انګریزانو طاقت د یو ایشیائي قوم د لاسه شکست خوړې شي نو د انګریزانو اثر به نهٔ صرف په وسط ایشیا کښې تباه شي بلکې د هندوستان هم زمونږ دلاسه د وتلو خطره ده. پس دا وخت چې کوم سوال د هغهٔ په مخکښې پروت وهٔ هغه په افغانستان باندې بیا د قبضې کولو نهٔ وهٔ بلکې اوس هغه په هندوستان باندې د خپلې قبضې او د تسلط ساتلو فکر وړے وهٔ. اخر د ډیر فکر او مصلحتونو نه پس هغه په دې نتیجه ورسیدو چې د هندوستان په خلقو باندې د رعب او د اثر اچولو په خاطر دا ضروري ده چې په افغانستان کښې د انګریزانو ورک شوے رعب بیا قائم کړې شي. او د هندوستان راجه ګانو او مها راجه ګانو ته دا وښودلې شي چې انګریزي طاقت باوجود د عارضي شکستونو نه هم هغه شان په هندوستان باندې د قبضې ساتلو قابل دے. مګر د افغانستان حدود هغه ورځو کښې د انګریزانو د حکومت د پولې نه ډیر لرې پراتهٔ وو. د انګریزانو او د افغانستان د حکومتونو په منځکښې د سکهانو بادشاهي وه او د دریائے ستلج نه، چې د انګریزانو پوله وه، تر جلال اباده قریباً څلور سوه میله لار وه او نهٔ په هغه وخت کښې ریل وهٔ او نهٔ موټر. نهٔ هوائي جهاز وهٔ او نهٔ لارۍ. ټول مزل پیاده وهٔ یا د اس او قچر سورلي وه. د امداد استول خو اسان کار وهٔ ولې هغوي په وخت باندې رسیدل او انګریزي فوځ د تباهۍ نه بچ کول ناممکن وو. دې خوا ته به هره ورځ مسټر کلارک او کپتان میکسین د کابل خبرونه ګورنر جنرل ته استول. او فوځي امداد به ئې غوښتلو. میکسین په دې ورځو کښې په پیښور کښې د انګریزانو پولیټیکل افسر وهٔ او کلارک د هندوستان په شمال مغربي سرحد باندې د ګورنر جنرل ایجنټ وهٔ. چنانچه لارډ آکلینډ افغانستان ته د فوځونو د استولو د مشکلاتو متعلق سر جیسپر نکولس کمانډر انچیف سره خط و کتابت شروع کړو. او ورته ئې ولیکل چې زهٔ نهٔ پوهیږم چې د یو بریګیډ فوځ په استولو به د افغانستان په واقعاتو څهٔ اثر وشي. زمونږ فوځونه چې اوس روان شي نو ایله به په فرورۍ کښې جلال اباد ته ورسي او د اپریل نه وړومبے وړومبے کابل ته په هیڅ شان نهٔ شي روانیدې او ممکنه ده چې تر هغې پورې هر څهٔ خلاص شوي وي. سر جیسپر نکولس کمانډر انچیف د ابتدا نه د افغانستان د لام برخلاف وهٔ. هغه اوس د دې هم برخلاف وهٔ چې بیا دې په لویه پیمانه باندې د افغانستان د اخستو دپاره فوځونه د هندوستان د حدودو نه بهر واستولے شي.

هغۀ سره دا فکر وۀ چې هسې نه چې په وسط ایشیا کښې د خپل اثر او رعب اچولو په طمع مونږ د هندوستان نه هم لاس ووینځو.

هر کله چې د گورنر جنرل او د کمانډر انچیف په منځکښې په دې خبرو لا خط و کتابت روان وۀ چې مسټر کلارک او مسټر رابرټسن (چې په دې ورځو کښې د صوبه جات شمال مغربي گورنر وۀ) هغې فوځونو ته د سمدستي روانیدو حکم وکړو کوم چې به پخپل وخت افغانستان ته په بدلی تلل. چنانچه په شپاړسم نومبر کلارک کرنل وائلډ ته چې د فیروز پور کمان افسر وۀ او کرنل رچ چې د لدهیانې کمان افسر وۀ ته خطونه ولیکل چې هغوي دې دواړه د فوځ یوه دسته د افغانستان د انگریزي فوځونو د امداد دپاره ولیږي. د دې احکام په تعمیل کښې په اتلسم نومبر پلټن نمبر 64او په شلم نومبر او شپږویشتم نومبر پلټن نمبر 53 او 30 د دریائے ستلج نه پورې وتلې. کلارک لاهور ته مهاراجه شیر سنگھ ته خطونه واستول چې د دې فوځ د پورې وتو دپاره دې په هر یو سیند باندې د پلونو او د کشتو انتظام وشي او د مهاراجه زوے کنور پرتاب سنگھ دې پیښور ته پنځۀ زره فوځ سره د کابل د انگریزي فوځ د امداد دپاره راشي. انگریزي فوځونه خو د دسمبر په اخر اخر کښې پیښور ته راورسیدل خو دې فوځ سره توپخانه نۀ وه بلکې د توپخانې یو څو افسران د دې غرض دپاره استولي شوي وو چې په پیښور کښې به دا فوځونه د سکهانو توپې واخلي. د دې فوځ کمان افسر بریگیډیر وائلډ وۀ. هر کله چې وائلډ د سکهانو نه د توپخانې مطالبه وکړه نو هغوي لیت و لعل شروع کړو. وائلډ ته حکم شوے وۀ چې سره د خزانې او د رسد د سامان فوراً ځان جلال اباد ته ورسوه. مگر د توپو نه بغیر په دره خیبر ننوتل ډیر مشکل وو. اخر د ډیر کوشش نه پس په دریمه جنوری سکهانو څلور توپې فیرنگیانو له ورکړې.

په دې اثنا کښې د هندوستان نه نور فوځونه هم د افغانستان په طرف راروان شول. ځکه چې هره ورځ به د مصیبتونو او د فسادونو یو نوے داستان د لارډ آکلینډ غوږونو ته رارسیدو چنانچه یو بل سالم بریگیډ فوځ ته او څۀ توپخانې او بې قاعدې رسالې ته د پیښور د تلو حکم وشو. دا ټول بریگیډ چې په هغې کښې صرف د جنگ سرې درې زره او څلور دیرش تنه وو د بریگیډیر جنرل میکیسکل د کمان لاندې په څلورمه جنوری د ستلج نه پورې وتل. د دې ټول فوځ د کمان دپاره گورنر جنرل او کمانډر انچیف جارج پالک چې دا وخت د اگرې د فوځونو جرنیل وۀ خوښ کړو. پالک یو ډیر زوړ فوځي افسر وۀ او په کال 1841ء کښې میجر جنرل شوے وۀ. پالک د ډاک په ذریعه د اگرې نه پیښور ته روان شو او لا د جنرل میکیسکل فوځونه په پنجاب کښې روان وو چې هغه پیښور ته راورسیدو. په دویشتمه جنوری کلارک او کمانډر انچیف د تهانیسر په مقام سره یو ځاے شو ځکه چې هغوي د جنرل ایلفنسټن د فوځ د تباهۍ نه خبر شوي وو. او د آئنده کار روایی دپاره ئې یو بل

ته خپل خپل تجويزونه پيش کړل. کمانډر انچيف د هندوستان نه بهر د ډير فوځ ايستلو خلاف وهٔ. او دا رائ ئ وه چې څهٔ فوځونه چې په افغانستان کښې صحيح او سالم پاتې شوي دي هغه دې هم هندوستان ته واپس راشي. مګر کلارک د فوځي پيشقدمۍ په طرف وهٔ. اخر کار کمانډر انچيف د کلارک رائ ومنله او يو دريم بريګيډ فوځ سره د توپخانې او رسالې پيښور ته د استولو دپاره تيار کړې شو. په دې ايام کښې د هندوستان په انګريزانو کښې داسې يو کور نهٔ وهٔ چې په هغې باندې د ماتم او خفګان مصيبت نهٔ وهٔ پريوتې. د هر چا څوک نه څوک خپل خپلوان يا دوست په کابل کښې موجود وهٔ او هر چا سره د هغهٔ د ژوند ډير فکر لګيدلے وهٔ. د دې نه وړومبے د انګريزانو غوږونه هميش د فتحې او د نصرت د خبرونو عادت شوي وو. هر کله چې اول ځل هغوي د پښتنو د لاسه د خپلو شکستونو حالات واؤريدل نو په هغوي کښې يو دهشت پيدا شو او د چار چاپيره نه د بدل اخستو او د انګريزي رعب قائمولو اوازونه د انګريزانو د اخبارونو نه او د لويو لويو فيرنګيانو د خلو نه وچت شول. د انګريزانو قومي غرور او تکبر ته په مشرق کښې د هغوي په تاريخ کښې په وړومبي ځل يوه عظيم الشانه صدمه رسيدلې وه. او د براډن ټولې خوشحالۍ د هغوي په غم بدلې شوې وے. داسې يو انګريزي کور نهٔ وهٔ چې په هغې کښې ماتم نهٔ وهٔ او د هندوستان د يو سر نه تر بله سره پورې انګريزي ابادۍ يو شور او واويلا جوړه کړې وه.

لارډ آکلينډ پخپله په دې ورځو کښې ډيرو خلقو د فکرونو او غمونو نه ډک د ګورنمنټ هاوس په غولي کښې يواځې په ګرځيدو ليدلے وهٔ. او دا شان معلوميدل چې د دې اندوهناک خبرونو اثر د هغهٔ په زړهٔ او په دماغ تر دې حده پورې شوې وهٔ چې د هغهٔ غوندې د لوے سياستدان په ارادو او په عزائمو کښې ئ تزلزل او شکست پيدا کړے وهٔ. يو خوا ته خو د هندوستان ټولې ګوره ابادۍ هغهٔ ته سترګې نيولي وے او بل خوا ته هغه پخپله بالکل نهٔ پوهيدو چې په دې تنګ او مصيبت ناک وخت کښې زهٔ د خپل ملک د فوځي اقتدار او عزت ساتلو دپاره کوم فوري تجويز باندې عمل کولے شم. د غمونو په دې انبار کښې هغهٔ ته په ديرشمه جنورۍ خبر راورسيدو چې د جنرل سيل فوځونه په جلال اباد کښې قلعه بند شوي دي مګر د کابل نه چې کوم فوځ د جنرل ايلفنسټن د کمان د لاندې را روان شوے وهٔ هغه د غلجيانو د لاسه بالکل تباه شو. اګر چې لارډ آکلينډ د انګريزانو د زوړ دستور مطابق د هندوستان په بيوسه باشنده ګانو د رعب اچولو دپاره فوراً يو اعلان د دې مضمون شائع کړو چې " د افغانستان فسادونو موږ ته د انګريزي طاقت ثابتولو او د هندوستاني فوځ د بهادرۍ او د شجاعت د نمائش يوه نوې موقع په لاس راکړه." مګر په حقيقت کښې لارډ آکلينډ باندې د ازادۍ د دې جنګ دومره لوے هيبت او ويره پريوتې وه چې د دې خبر په اوريدو سره هغهٔ سمدستي کمانډر انچيف ته وليکل چې جنرل پالک دې اوس دومره سعي و کړي

چې د جنرل سيل فوځونه صحيح سلامت د جلال اباد نه پيښور ته واپس شي. او مونږ له پکار دي چې د افغانستان د دوباره اخستو خيال د دماغ نه وباسو.

د فروري او مارچ په مياشت کښې معلومه شوه چې د لارډ آکلينډ جانشين حکومت برطانيه لارډ النبرو مقرر کړو. او په نن سبا کښې به هغه هندوستان ته روان شي. لارډ ايلنبرو هم د ټوري د ډلي د رائ مطابق په افغانستان باندې د شاه شجاع د تخت نشين کولو دپاره د لام تړلو ډير سخت مخالف وۀ. هرکله چې لارډ آکلينډ د خپل جانشين د تقررۍ نه خبر شو نو هغۀ نور هم افغانستان ته په لويه پيمانه د فوځونو د استولو برخلاف خپله اراده مصمم کړه. په دې وجه چې هغۀ لارډ ايلنبرو ته د خپلې پاليسۍ د چلولو دپاره ميدان صاف پريږدي. هغۀ دا شان خيال وکړو چې لارډ ايلنبرو د افغانستان د جنګ برخلاف خپله رائ په ډير شد ومد سره په خپلو سابقه تقريرونو کښې ښکاره کړې وه او ډيره ممکن وه چې هندوستان ته د رارسيدو سره هغه د افغانستان نه ټول انګريزي فوځونه را وباسي. او پښتون قوم سره ټول سياسي تعلقات پريکړي. نو کۀ چرې زۀ اوس ډير فوځونه د خپلې زړې پاليسۍ په تائيد کښې د افغانستان د دوباره فتح کولو دپاره واستوم نو د لارډ ايلنبرو به د خپل ضمير او د خپلې رائ برخلاف ناکام شي چې زما د پاليسۍ تائيد وکړي. پس هغۀ په زړۀ کښې دا فيصله وکړه چې زۀ د لارډ ايلنبرو لاسونه په دې طريقه تړل نۀ غواړم چې هغه بيا په ازادۍ سره په خپلې پاليسۍ باندې عمل کولې نشي.

هرکله چې لارډ آکلينډ لا په دې شش و پنج کښې وۀ چې آيا د دريو بريګيډو فوځ نه علاوه نور فوځونه هم افغانستان ته واستوم کۀ نه. چې بريګيډير وائلډ د جنرل سيل د امداد دپاره جلال اباد ته د خزانې د سامان جنګ او د رسد د رسولو دپاره په دره خيبر ورننوتو. جنرل سيل او کپتان ميګريګر جنرل وائلډ ته ډير ضروري خبرونه رسولي وو چې سمدستي سره د خپله بريګيډه زمونږ امداد ته را ورسه. ګني زمونږ حالت ډير خطرناک دے. اګر چې جنرل اوے طبيله (چې د سکهانو د طرف نه د پيښور ګورنر وۀ) وائلډ ته ووئيل چې په دې دومره لږ فوځ باندې د درۀ خيبر نه پورې وتل ډير مشکل دي مګر وائلډ د هغۀ خبره ونۀ منله او نۀ صرف دا چې پخپله جمرود ته وروړاندې شو بلکې د سکهانو نه ئې هم امداد طلب کړو. د سکهانو فوځ ته چې څۀ وخت اوے طبيله د انګريزي فوځ په امداد کښې د روانيدو حکم وکړو نو هغوي انکار وکړو او وې وئيل چې مونږ د خپله لاسه ځان مرګ ته نشو ورکولے. څۀ وخت چې د وائلډ د سکهانو د امداد نه طمع قطعي شوه نو هغه په جمرود کښې پاتې شو او دا خيال ئې وکړو چې تر څو پورې ماته نور امدادي فوځ نۀ وي رارسيدلے زۀ په درۀ خيبر باندې نۀ ور وړاندې کيږم. په دې موده کښې د علي مسجد په قلعه کښې د فيرنګيانو د طرف نه د يوسفزو يوه دسته پرته وه او د کپتان ميکسين يو تربور مسټر ميکسين د لاندې هغوي په

هغه ځاے د ډیرې مودې نه د افریدو مقابله کوله. مګر په دې ورځو کښې افریدو په هغهٔ باندې ډیرې سختې حملې شروع کړې وے چونکې د علي مسجد قلعه د درهٔ خیبر کُنجي ګڼلې شي بریګیډیر وائلډ دا خیال وکړو چې کهٔ چرې د علي مسجد قلعه د افریدو لاس ته ورغله نو بیا به په خیبر باندې ورتلل ناممکن شي. چنانچه هغهٔ مجبوراً په پنځلسم د جنورۍ د شپې په وخت کرنل موسلے سره د دوؤ پلټنو په علي مسجد باندې د قبضې کولو دپاره روان کړو. دا فوځ شپه په شپه عین تر علي مسجد پورې د افریدو په بې خبرۍ کښې بغیر د ډز و ډوز نه د نمر ختو نه لږ ساعت مخکښې ورسیدو او په قلعه باندې ئې قبضه وکړه. مګر د بدقسمتۍ نه په څهٔ غلط فهمۍ د دې فوځ نه د خوراک د سامان ځاروي وروستو پاتې شو او دغه شان دا فوځ څهٔ لږ ډیر د خوراک سامان سره په علي مسجد کښې قلعه بند شول. کپتان میکیسن پولیټیکل افسر هم دې فوځ سره وهٔ. هغهٔ سمدستي بریګیډیر وائلډ ته سوال جواب وکړو چې د علي مسجد د فوځ د امداد دپاره سره د باقي دوو پلټنو او د سکهانو د توپخانې او د هغوي د امدادي فوځ را روان شه. ګني زمونږ خوارک به ډیر زر ختم شي او مونږ به د لوږې د لاسه هلاک شو.

افریدو ته اوس پوره خبر شوے وهٔ او هغوي لوے لوے ټولې د غرونو د سوکو په سر ځاے په ځاے ناست وو او هیڅ فوځ ئې وړاندې کیدو ته نهٔ پریښودو. دې خوا ته بریګیډیر وائلډ خپل ټول فوځ سره علي مسجد ته د رسد سامان رسولو دپاره په درهٔ خیبر ورننوتو. په درهٔ خیبر باندې ورننوتو سره د سکهانو امدادي فوځ د هغهٔ نه د جمرود د مقام نه راوتښتیدو او نیغ پیښور ته واپس شو. په نولسمه جنورۍ بریګیډیر وائلډ یواځې خپلو دوو پلټنو سره او د سکهانو توپخانې سره په علي مسجد پیشقدمي شروع کړه. افریدو په ډیره تورزنۍ په هغوي دا شان ګولۍ وچلولې چې په وړومبۍ حمله کښې ئې د وائلډ د فوځ وار خطا کړو. د هندوستاني فوځ نه چې څهٔ وخت ډیر خلق مړهٔ شول نو هغوي ډیر ویریدل او په شا ئې تیښته وکړه. دیخوا نه افریدو په تښتیدونکي فوځ نور هم په شدت سره ګولۍ وچلولې. د فیرنګیانو نه د سکهانو توپې څهٔ خو ماتې شوې او یوه توپه ترینه په تیښته کښې پاتې شوه. بریګیډیر وائلډ پخپله هم په مخ باندې زخمي شو او د هغهٔ نور ډیر افسران هم زخمیان شول، او یو افسر ئې قتل شو. د سپاهیانو نه بیشانه ډیر نقصان وشو او لاچار ټول فوځ په سخت ابتر او پریشان حالت کښې جمرود ته په تیښته راغلو. کپتان لارنس (چې بیا وروستو سر هنري لارنس شو) او په هغه ورځو کښې د مسټر کلارک اسسټنټ وهٔ هغه هم وائلډ سره په دې واقعه کښې موجود وهٔ. هغهٔ پخپل رپورټ کښې مسټر کلارک ته د دې واقعې بابت دا شان لیکي:

"We have been disgracefully beaten back, both our large guns broke down, one was on an elephant but was taken down to put together when the other failed,

**but its carriage breaking too, the sepoys lost all heart, and I grieve to say, that i could not get men to bring one off, though I tried for an hour, and at last, finding we were only expending ammunition, we left it in their hands, but it was broken completely down and spiked."**

ترجمه : " مونږ ښهٔ په شرمندګۍ سره وهل وخوړل زمونږ توپې ماتې شوې يوه په هاتي باندې وه ولې هر کله چې يوه بنده شوه نو مونږ هغه راکوزه کړه چې برابر ئ کړو ولې د هغې ګاډے هم مات شو. سپاهيانو زړهٔ بالکل بائلو او زهٔ په ډير افسوس سره دا وايم چې ما سره دومره سړي پاتې نشو چې يوه مي راوړې وے. اګر کهٔ ما تر يوې ګينټې پورې کوشش وکړو او هر کله چې ماته دا معلومه شوه چې مونږ هسې کارتوسونه خرابوؤ نو اخر مونږ توپه د دشمن په لاس کښې پريښوده مګر وړومبے مو هغه بالکل ماته کړه او بيا مو پکښې ميخونه ټک وهل."

ديخوا کوم فوځ چې په علي مسجد کښې پروت وۀ د هغهٔ د خوراک سامان په ختميدو راغے او جمرود او پيښور سره ئ د تګ راتګ لار بنده شوه. په دې کرنل موسلے د يو څو ورځو د انتظار نه پس په دريويشتمه جنورۍ دا فيصله وکړه چې د جمرود قلعه افريدو ته پريږدو او مونږ په هر شان چې وي ځان جمرود ته ورسوؤ. چنانچه په څليريشتمه جنورۍ کرنل موسلے دا قلعه خوشے پريښوده او پخپله جمرود ته سره د دستې راوتښتيدو. د دې ټولې کار روايي دومره خراب اثر په انګريزي فوځ پريوتو چې د هغوي په زړهٔ کښې دا خيال د هميشه دپاره کښيناستو چې په درهٔ خيبر ورننوتل د امزري په خلهٔ کښې ورننوتل دي. د کرنل موسلے په فوځ باندې هم د واپسۍ په وخت کښې افريدو ډيرې ډزې وکړې او کپتان ولسن او کپتان لاک ئ ترينه مړهٔ کړل. او نور بيشانه ډير فوځي سامان ئ ترينه په زور واخستو او د فيرنګيانو نه ډير زخميان او بيماران په لاره کښې پاتې شول.

د دې نه پس بيا انګريزي فوځ د وائلډ د کمان د لاندې د خيبر نه د پورې وتو کوشش ونکړو. او د جنرل پالک او د نورو دوؤ بريګيډو فوځونو چې د پنجاب په لاره پيښور ته را روان وو په انتظار کښيناستل. او يو لوے تعداد په هسپتال کښې داخل شو باقيمانده فوځ دا نيت وکړو چې په هيڅ صورت هم بيا مونږ په خيبر کښې افريدو سره جنګ نشو کولے. په هغوي کښې ډير خو د خپلو رجمټو نه وتښتيدل. د افريدو نه دا ويره او دا خوف نهٔ صرف په سپاهيانو کښې پروت وۀ بلکې انګريزي افسران هم افريدو ته د مخامخ کيدو نه سخت ويريدل. او سپاهيانو او هندوستاني افسرانو سره به ئ دا شان خبرې کولې چې د ټول فوځ په زړهٔ کښې بزدلي او هيبت پيدا شو. جنرل پالک په لاره باندې د دې ټولو واقعاتو نه خبريدو او دغه شان کمانډر انچيف ته هم د پوټې پوټې خبرې اطلاع رسيدله. چنانجه په نهۀ ويشتمه جنورۍ کمانډر انچيف جنرل پالک ته يو خط د دې افسرانو د بزدلانه رويې متعلق دا شان

وليکلو :

" My dear General, In some late letters Capt; Lawrence expressed himself in a very decided manner touching the disheartened and unguarded language held by officers belonging to the corps which were beaten back in the Khyber Pass on the ninteenth instant. God forbid that they should feel and panic, or even alarm; but if you observe it, I rely on you addressing yourself to them in a very forcible manner, and shaming them out of such very unbecoming, un military, and dangerous conduct. Their duty is obedience- prompt and energetic obedience- such as executes without expression of doubt. If more has been said than the case seemed to require, take no notice of this further than to warn Capt; Lawrence if you think proper to do so."

ترجمه : "زما خوږه جرنيله، په څنې وروستنو خطونو کښې کپتان لارنس دا خبره ډير په صفا الفاظو کښې کړې وه چې د هغې فوځ افسران چا چې په درهٔ خيبر کښې په نولسم تاريخ وهل خوړلي دي ډيرې د بزدلۍ او نامعقولې خبرې کوي. خدائے دې نکړي چې د هغوي په زړهٔ کښې وحشت او هيبت پيدا شوې وي مګر کهٔ تا پخپله دا شان جذبات وليدل نو زما په تا دا يقين دے چې تهٔ به هغوي ته په دې باره کښې سختې زورنې ورکړې. او هغوي په دې ناپسنديده غير فوځي رويه باندې وشرموې. د هغوي فرض د حکم تعميل کول دي دا شان تعميل چې فوراً وشي او په مضبوطوالي وشي او کار سر ته بغير د شک ظاهرولو نه ورسوي. کهٔ چرې ما نه د ضرورت نه څهٔ زياتي خبرې شوې وي نو بيا په دې خط نور څهٔ عمل مهٔ کوه ماسوا د دې نه چې کپتان لارنس متنبه کړه کهٔ چرې مناسب ئې ګڼې."

جنرل پالک په پنځمه فروری پيښور ته راورسيدو او سمدستي ورته معلومه شوه چې ټول فوځ د افريدو د ويرې نه زړهٔ بائللے دے او په هيڅ شان دويمې جګړې ته تيار نهٔ دي. په هسپتال کښې د بيمارانو شمار قريباً اتلسو سوؤ ته رسيدلے وهٔ. او افسران او سپاهيان دواړه بالکل بې همته شوي وو. د دا شان واقعاتو په موجودګۍ کښې جنرل پالک دا مناسب وګڼله چې په ځائے د دې چې سمدستي بيا په خيبر باندې پيشقدمي وشي دا به ښه وي چې د باقي فوځ انتظار وشي او په دې وقفه کښې د وائلډ د فوځ د سپاهيانو زړهٔ او همت وچت کړې شي. پالک راتلو سره د هسپتالونو معائنې شروع کړې او بيل بيل افسر او سپاهي له ئې ډاډ ورکړو مګر سره د دې د وائلډ د فوځ سپاهيانو به په خپلو کښې هره ورځ جرګې کولې او هر چا ته به ئې دا وئيل چې مونږ د افريدو مقابلې ته په هيڅ وجه نهٔ جوړيږو. کوم فوځ چې لږې ورځې پس د بريګيډير ميکسيکل د کمان د لاندې پيښور ته راورسيدو د هغې سپاهيانو ته هم د وائلډ سپاهيانو ټول حال ښکاره کړو او هغه ئې هم ځان سره هم خيال کړو. غرض دا چې ورو ورو د ټول فوځ په سپاهيانو کښې سخت هيبت او د ويرې خيالات راپيدا شول. مګر پالک بدستور هر چا ته ډاډ ورکولو او په ځائے د دې چې هغهٔ چا سره سختي کړې وے او

هغوي له ئ سزا ورکړې وے هغهٔ هغوي سره د همدردي او د مهرباني سلوک شروع کړو. مگر باوجود د دې کوششونو د څهٔ وخت دپاره بالکل ناکامیاب پاتې شو. په دې باره کښې د سپاهیانو او د افسرانو یو شان حال وۀ او افسرانو به ښکاره په مس کښې یو بل سره دا خبرې کولې چې په خیبر باندې ورتلل خپل ځان تباه کول دي.

"The taint seems to have reached even to some of the officers of Wild's brigade, who did not hesitate openly to express at the mess table the strongest opinions against a second attempt to force the Khyber, and to declare their belief that very few would ever return to Peshawar. One officer publicly asserted that it would be better to sacrifice Sale's brigade than to risk the loss of twelve thousand men on the march to Jalalabad; and another said that, if an advance were ordered, he would do his best to dissuade every sepoy of his corps from again entering the pass."

Sir, John Key vol; III page 50

بلکې یو افسر تر دې پورې ووې چې کهٔ د پیشقدمۍ حکم وشو نو زهٔ به هر سپاهي ولمسوم چې په درۀ خیبر باندې نهٔ ننوځي. د فوځ د سپاهیانو او د افسرانو د دې بزدلۍ په حالت کښې د جنرل پالک دپاره د هغوي پاڅول ډیر گران کار وۀ. مگر هغه د یوې ډیرې پخې ارادې افسر وۀ. هغهٔ په ډیر چل او هنر په خپل خوفزده او زړۀ بائللي فوځ کښې د همت اچولو کوشش وکړو او سپاهیانو سره ئ د ډیرې مینې او محبت سلوک راواخستو او هغوي ته ئ په خپل عمل وښودل چې زهٔ ستاسو د ټولو ضروریاتو، د تکلیفونو او مشکلاتو احساس کوم او کومې قربانۍ ته چې زهٔ پخپله تیار نهٔ یم هغې ته به هیچرې خپل سپاهیان ورورَاندې نهٔ کړم. په داسې عقل مندۍ او شیرین کلامۍ هغهٔ په سپاهیانو کښې په خپلو افسرانو باندې ورک شوے اعتبار پیدا کړو چې د نافرمانۍ او د حکم نهٔ منلو کوم خیالات چې د هغوي په زړونو کښې پیدا شوي ووهغه د هغوي نه ورو ورو ووتل. هر کله چې کمانډر انچیف جنرل پالک د جلال اباد د فوځ د امداد دپاره مقررولو نو هغهٔ ته دا پته وه چې ما له یوه ډیره لویه د عزت عهده راکړې شوې ده او دا هم ورته ښه معلومه وه چې نهٔ صرف د هندوستان انگریزي ابادۍ بلکې د انگلستان ټولو خلقو به زما کامیابۍ ته سترگې نیولي وي. په دې هغه پوهه وۀ چې د نوم گټلو د ترقۍ کولو او د خپل ملک د خدمت دپاره ماته د دې نه بله نادره موقع بیا په لاس نهٔ شي راتلې. دا وخت هغهٔ دا محسوس کوله چې د ټول انگریز قوم عزت، ابرو او نوم زما په لاس کښې دے. او کهٔ چرې ښه کامیابي مې وکړه نو د فیرنگیانو په تاریخ کښې به زما نوم د همیش دپاره یاد پاتې شي. باوجود د دې احساس نه جنرل پالک د دې نوم او شهرت حاصلولو دپاره بالکل د جلدبازۍ نه کار وانهٔ خستو بلکې خپل کار ته ئ ډیر په صبر، حوصله مگر په پوره استقلال او په پخه اراده لاس واچولو. کهٔ چرې د هغهٔ په ځاے بل څوک ناتجربه

کاره او نوجوان جرنیل وړے نو هغۀ به په خپل جوش کښې رارسیدو سره سمدستي د جلال اباد د فوځ د راخلاصولو دپاره په ډیره جلدۍ او په زرورتیا په خیبر وردننه شوے وے. او نتیجه به دا شوې وه چې د هغۀ څۀ فوځونه به راتښتیدلي او څۀ به په خیبر کښې تباه شوي وو. مګر پالک سره د خپل نوم د ګټلو نه علاوه زیات فکر د خپل ملک د نوم ګټلو وۀ. په دې وجه هغۀ ډیر په دلجمعۍ او په استقلال د یوې مناسبې موقعې او د ښو واقعاتو په انتظار کښې کښیناستو. او اګر چې هغۀ ته په ابتدا کښې څۀ خاص کامیابي ونشوه مګر اخر د مسلسل کوششونو او همت نه پس د هغۀ سعي بار آوره شوه او د هغۀ په مشرۍ کښې نۀ صرف د افسرانو بلکې د هر سپاهي په خپل ځان کښې د خپلو افسرانو اعتماد پیدا شو. د فرورۍ او د مارچ په میاشتو کښې هغۀ صرف په دې کار کښې مصروف پاتې شو او اګر چې د جلال اباد انګریزي فوځ ته هم د روپو او هم د رسد د سامان او د سامان جنګ ډیر سخت ضرورت وۀ مګر جنرل پالک د خیبر نه په کامیابۍ سره د وتو دپاره په خپل سامان جمع کولو کښې څۀ کمے پرې ښودل نۀ غوښتل. په دې اثنا کښې د پالک د امداد دپاره نور فوځونه هم د پنجاب په لاره را روان وو. د پالک غرض دا وۀ چې دا فوځونه راورسي نو سمدستي به په خیبر پیشقدمي کومه. د بل خوا نه جنرل سیل او میګریګر هغۀ ته بیشماره ډیر خطونه او قاصدان د نورې پیشقدمۍ دپاره راولیږل او ورته ئې ووئیل چې محمد اکبر خان به لغمان کښې ناست وي او قریب ده چې هغه په مونږ حمله وکړي د مریضانو دپاره دارو ختم شوي دي، روپۍ راسره نشته، خوراک کم شوے دے او کۀ چرې تۀ زمونږ امداد ته را ونۀ رسیدې نو مونږ به تباه شو. په داسې حالاتو کښې د پالک دپاره خپل دماغ په توازن کښې ساتل ګران وو مګر هغۀ ښه په کلکه هغوي ته جواب ورکړو چې تر څو پورې مزید امداد او سامان نۀ وي رارسیدلے نو تر هغې پورې زۀ په درۀ خیبر باندې نۀ در وړاندې کیږم.

## څلورم باب

د جنرل سیل په جلال اباد قبضه کول، په انګریزي فوځ د غازیانو حملې، په کابل کښې د انګریزي فوځ اتلس زره فوځیان قتلیدل، او صرف د یو ډاکټر برائیډل جلال اباد ته په بد حال رارسیدل، د شاه شجاع میګریګر ته یو پټ خط لیکل، د انګریزي افسرانو په خپلو کښې جرګه کول او د جلال اباد د پریښودلو په مسئله د دوئ په منځ کښې اختلاف او شاه شجاع ته د انګریزانو یو خط لیکل، انګریزي استحکاماتو ته په جلال اباد کښې د زلزلې نه نقصان رسیدل او بیا ئې مرمت کول، د شاه شجاع برخلاف د قوم نفرت پیدا کیدل او د هغۀ قتلول.

مونږ ورومبے ذکر کړے دے چې څهٔ وخت د کابل د ازادۍ جنګ شروع شو نو جنرل سیل سره د خپله فوځه او کپتان میګریګر پولیټیکل ایجنټ د ګندمک په مقام دیره وو. د دې نه یو څو ورځې وروستے هغهٔ غلجو سره ځاے په ځاے جنګونه کړي وو او د هغوي ډیرې قلعه ګانې ئې ورانې کړې او لښکرې ئې خورې کړې وے. میکناټن یو خوا جنرل ناټ ته او بل خوا جنرل سیل ته ضروري خطونه لیکلي وو چې سمدستي کابل ته د انګریزي فوځ امداد ته راورسيږئ. هر کله چې جنرل سیل ته د میکناټن د دې خط نه د کابل د بغاوت د واقعاتو متعلق خبر وشو نو هغهٔ د یوې جنګي جرګې نه پس دا فیصله وکړه چې د کابل فوځ ته زمونږ د طرف نه امداد ورکول په موجوده واقعاتو کښې ناممکن دي. بلکې مونږ له په جلال اباد باندې قبضه کول پکار دي ځکه چې یو خو غلجي په چارچاپیره علاقه کښې بیا په ډیر جوش او اتفاق راپاڅیدلي دي او بله دا چې د خورد کابل او د جګدلک په درو باندې غلجو مکمله قبضه کړې ده. نو د جنرل سیل دا رائ وه چې بغیر د سخت نقصان وچتولو نه زما بریګیډ دپاره کابل ته رسیدل ناممکن دي. له دې کبله د سیل فوځ په یولسم نومبر جلال اباد طرف ته روان شو او د کابل فوځ ئې د خداے اسرې ته پریښودو. سیل څهٔ سامان د ګندمک په چاوڼۍ کښې د شاه بې قاعدې فوځ ته د حفاظت دپاره پریښودو او پخپله ئې د سپک سپک سامان سره په جلال اباد پیشقدمي وکړه. سیل د ګندمک نه لا ډیر لرې وهٔ چې د شاه دا بې قاعدې فوځ چې د جانباز په نوم مشهور وهٔ ټول عام اولس سره په تحریک ازادۍ کښې شامل شول او د ګندمک چاوڼۍ ئې لوټ کړه او بیا ئې ورته اور ورته کړو. د دې نه پس د چارچاپیره علاقې نور عام خلقو ځان ځان له وسله راواخسته او په لویو لویو ډلو کښې د غرونو په سوکو باندې د سیل په فوځ د ډزو کولو په نیت راجمع شول. دیخوا د جنرل سیل دا کوشش وهٔ چې ډیر په شتاب باندې ځان جلال اباد ته ورسوم. او د اولس د حملو نه په جلال اباد کښې پناه واخلم. په ټوله لار باندې د دې فوځ او د غازیانو په منځکښې ورې ورې معرکې وشوې ولې چونکې غازیان بالکل بې تنظیمه، بې ترتیبه او بې مشره وو هغوي د سیل د فوځ څهٔ په لویه پیمانه نقصان ونهٔ کړې شو. په دیارلسم نومبر سیل په جلال اباد باندې قبضه وکړه او چونکې د جلال اباد خلق د کابل د تحریک نه بالکل بې خبره وو په دې وجه هغوي د سیل مقابله ونکړه. او د هغهٔ ټول بریګیډ ئې بې ډزه ډوزه ښار ته دننه راپریښودو او پناه ئې ورله ورکړه. د دې په بدل کښې سیل د جلال اباد ټوله سول ابادي د خپلو کورونو نه په زور وویسته او هم د هغوي په کورونو او د هغوي د خوراک په سامان باندې ئې قبضه وکړه. مګر تر دې وخته پورې هغوي ته د دې هیڅ وجه نهٔ معلومیده. د سیل دا منشا وه چې یو خو د خوراک ټول سامان د فوځ په قبضه کښې راشي او بل دا چې د خوراکیانو شمار کم شي. نو د ښار ټوله ابادي ئې وویسته. د دې نه پس هغهٔ د جلال اباد د فصیل د مضبوطولو دپاره په ډیره لویه پیمانه

بـانـدې انتظام شروع کړو او کپتان براؤفټ د سپرمينا کمان افسر ته ئ دا کار حواله کړو. د جـلال ابـاد مـوجـوده ديوالونه بالکل کچه او د ګوله باری د زغملو دپاره ډير کمزوري وو. د دومره لوے ښار دپاره يو ډير مضبوط فصيل پکار وۀ او بل په هغې باندې د پهرې لګولو دپاره بـرجـونـه او وړې وړې قـلاګـانـې پـکـار وے. ديـخوا ته غازيان ورو ورو د جلال اباد د ښار نه راتـاويـدل مـګـر سـره د دې بـراؤفـټ ډيـر پـه استـقلال او حوصله دا کار په خپل لاس کښې واخستلـو او پـه لـږو ورځو کښې ئ د ټول ښار نه چارچاپيره يو مضبوط ديوال او د هغې په خـوا کښې ئ ځاے په ځاے برجونه جوړ کړل. چونکې په ټول ښار باندې د سيل د فوځ قبضه وه پـه دې وجـه کوم کوم کورونه او باغونه چې د هغوي په لاره کښې حائل کيدل هغه ئ ټول تبـاه کـړل. په دې ټول کار کښې هرَ سپاهي ګوره او ديسي شپه او ورځ مشغول وۀ او د ډيرو پـه اتـفـاق سـره دا مشـکـل کـار زر تـر سـره ورسيـدو. د دې کار دپاره د اوسپنې او د لرګو ضـرورت وۀ. چـنـانـچه د ښار د خلقو اباد کورونه وران کړې شو او د هغې اوسپنه او لرګي د بـرجـونـو او د قـلاګانو په تعمير کښې ولګيدل. په دې اثنا کښې غازيان هم چپ ناست وو په شپـاړسـم نـومبـر غـازيـان د سيـل د فـوځ يوې دستې سره چې د ماټينتهـ د کمان لاندې وه ښه سـخته جګړه وکړه مګر غازيان هم په خپله زړه بې ترتيبي کښې ځوک يو ځاے او ځوک بل ځاے پـراتـۀ وو اګـر چې په هغوي کښې د بهادری او د نشانه بازی څۀ کمے نۀ وۀ او هر يو د خپـل قـام او مـلـک د ازادی دپـاره پـه ميدان جنګ کښې د سر ورکولو دپاره تيار راغلے وۀ مـګـر چـونـکـې نـۀ خـو د هغوي ځوک مشترک سالار وۀ او نۀ په هغوي کښې د حملې او د مـقـابـلې کولو څۀ خاص قاعده وه. په دې وجه د انګريزي فوځ، سره د دې چې په هغې کښې ډيـر خـلـق هـنـدوسـتـانيان او تش د روپو او د تنخواه په خاطر پښتنو سره جنګيدل، غازيانو ته کـافي نـقصانات ورسول. علاوه د بدانتظامی نه د غازيانو لويه کمزوري دا وه چې هغوي سره تـوپـې نـۀ وے او انـګـريـزي فـوځ سـره، خپل بريګيډ او مکمله رساله او توپخانه موجوده وه. ديـخـوا ميـګـريـګـر چـارچاپيره اطرافو کښې روپۍ خورې کړې او کله په زور او کله په ډير قيـمـت به هغۀ غله راجمع کوله. په لږه موده کښې هغۀ قريباً د يوې مياشتې خرڅ په جلال اباد کښې راجـمـع کـړو. څۀ موده پس د کابل د طرف نه ډير تشويشناک او د خفګان خبرونه د اولـس د خـلـقـو د خلو نه په جلال اباد کښې مشهور شول مګر چونکې دې فوځ څۀ قابل ذکر مـقـابـلـه لا غازيانو سره نۀ وه کړې له دې کبله په هغوي کښې د ضابطې او د تنظيم په سبب څۀ خـاص د بـزدلـی او د کـمـزوری آثـار ښـکـاره نـۀ شـول. پـه دې منځکښې په ديرشم دسمبر ميګريګر له د پوټنګر خط راغلو چې ميکناټن قتل شو او مونږ غازيانو سره د افغانستان خالي کـولـو دپـاره د عهـدنـامـې خبـرې اترې کوۀ. د دې خبر راتلو سره په دې فوځ کښې يو لوے ورهـم پيدا شو او هـر سپـاهـي او افسـر هيبـت زده شـو مـګـر چونکې د فوځ افسران ډير د

استقامت خاوندان وو او په تیښته کښې او د جلال اباد په پرېښودو کښې د هغوي مرګ یقیني وۀ په دې وجه چار و ناچار هغوي د خپل حفاظت دپاره خپل کوششونه نور هم زيات کړل. په اتمه جنوری میکریکر له د پوټنګر د اتویشتم دسمبر لیکلے خط چې هغۀ په فرانسیسي کښې د مضمون د پټولو دپاره لیکلے وۀ راورسیدو. په هغې کښې پوټنګر لیکلي وو چې په کابل کښې د انګریزي حکومت فوځ ورځ په ورځ زیاتي خطرناک کیږي او له دې کبله کومه عهدنامه چې میکناټن غازیانو سره شروع کړې وه په هغې باندې لا هم هغه شان خبرې اترې جاري دي. په اخر کښې پوټنګر میکریګر ته لیکلي وو چې اګر چې میکناټن د جلال اباد د خالي کولو دپاره تاسو ته هدایات رالیږلي وو مګر تر څو پورې چې د کابل نه نور احکام تاسو ته نۀ وي رارسیدلي تر هغې پورې تاسو جلال اباد بالکل پرې نۀ ږدئ. د دې په بله ورځ پوټنګر میکریکر ته یو سرکاري خط د هغې عهدنامې د شرطونو مطابق چې کومه د غازیانو او فیرنګیانو په منځکښې په نهۀ ویشتم دسمبر شوې وه راولیږلو او په هغې کښې جنرل ایلفنسټن او پوټنګر جنرل سیل او میکریګر ته دا حکم ورکړے وۀ چې تاسو جلال اباد سمدستي پریږدئ د دې خط مضمون دا دے :

Kabul Dec,29th 1841

"Sir,

It having been found necessary to conclude an agreement, founded on that of the late Sir W.H.Macnaghten, for the evacuation of Afghanistan by our troops, we have the honour to request, that you will intimate to the officer commanding at Jalalabad, our wish that the troops now at that place should return to India, commencing their march immediately after the receipt of this letter, leaving all guns, the property of Dost Mohammad Khan, with the new Governor, as also such stores and baggage as there may not be the means of carrying away, and the provisions and stores for our use on our arriving at Jalalabad.

Abdul Ghafoor Khan, who is the bearer of this letter, will render you all the assistance in his power. He has been appointed Governor of Jalalabad on the part of the existing Government.

We have the honour to be etc.

Eldered Pottinger, Incharge of Kabul Mission

W K Elphinstone Major Gerneral

ترجمه : کابل نهۀ ویشتم دسمبر 1841ء

صاحبه، چونکې دا خبره مونږ ته ضروري ښکاره شوه چې د متوفيٰ سر ولیم هنري میکناټن د عهدنامې په بنا باندې مونږ خپل فوځونه د افغانستان نه د ایستلو دپاره اقرار وکړو له دې کبله مونږ تا ته دا سوال کوؤ چې تۀ د جلال اباد کمان افسر ته زمونږ دا منشا وربنکاره کړه چې د هغه ځاے فوځونه دې هندوستان ته واپس شي او هغوي دې خپله روانګي د دې

خـط پـه در رسیـدو سـره شروع کړي او هغه ټولې توپې دې چې کومې د دوست محمد خان مـلـکیت دي نوي ګورنر ته پرېږدي او هغه ټول اسباب او سامان او ذخیرې چې د کوم د وړلو دپـاره تـاسـو سره وسائل نشته او کوم د خرڅ خوراک ذخیرې چې زمونږ دپاره ضروري دي هـر کـلـه چې مونږ جلال اباد ته در ۰ رسو نو هغه هم نوي ګورنر سره پرېږدئ. عبدالغفور خان چې حـامـل د دې خـط دے هغه به تاسو سره هر ممکن امداد وکړي. هغه موجوده حکومت د جلال اباد ګورنر مقرر کړے دے.

دا خـو میـګـریـګـر سیل ته پیش کړو او هغوي په مصلحت سره د دې حکم د تعمیل کولو نه په یو څو بهانو او غلط عذرونو ګریز وکړو او په جواب کښې ئ لاندینے خط پوټنګر او ایلفنستن ته ولیکلو:

Jalalabad Jan,9, 1842

**Sirs, We have the honour to acknowledge the receipt of your letter of the 29th ultimo, which you therein state was to be delivered to us by Abdul Ghafoor Khan, appointed Governor of this place by the existing power at Kabul. That communication was not delivered to us by him, but a messenger of his; and though dated 29th Dec. 1841, has only this moment reached us. I have, at the same time, positive information that Mohammad Akbar Khan has sent a proclamation to all the chiefs in the neighbourhood urging them to raise their followers for the purpose of intercepting and destroying the forces now at Jalalabad. Under these circumstances we have deemed it our duty to await a further communication from you, which we desire may point out the security which may be given for our safe march to Peshawar.**

**We have the honour to be etc. etc.**

**R.Sale, Major General**

**G.H Macgregor, Political Agent**

ترجمه : جلال اباد نهمه جنوري 1842ء

صاحبانو، مونږ ته ستاسو د نهٔ ویشتم ماه ګزشته خط را ورسیدو. تاسو په هغې کښې لیـکـلي دي چې دا خط به عبدالغفور خان مونږ ته راکوي چې هغه د کابل موجوده حکومت د جـلال ابـاد ګـورنـر مـقرر کړے دے. مونږ ته ستاسو دا خط عبدالغفور خان نه بلکې د هغهٔ یو قـاصـد راکړو او اګر چې هغه په نهٔ ویشتم دسمبر لیکلے شوے دے مګر هغهٔ مونږ ته اوس په دې سـاعـت راکـړو. ولې مونږ ته د دې خبرې قطعي اطلاعات رارسیدلي دي چې محمد اکبر خـان د دې عـلاقـې ټـولو سردارانو ته یو اعلان استولے دے چې هغوي دې خپل خپل سړي را واستـوي چـې د جلال اباد فوځونو ته په لاره کښې کښیني او هغوي تباه کړي. په دې واقعاتو کښې مونږ دا فرض ګڼو چې ستاسو د دویم حکم انتظار وکړو. په هغه حکم کښې مونږ ته دا هم ښکاره کړئ چې زمونږ پیښور ته په حفاظت سره د تلو څهٔ ضمانت دے؟

## مونږ یو ستاسو رابرټ سیل میجر جنرل او جي ایچ میګریګر پولیټکل ایجنټ

د دې خط نه به لوستونکو ته معلومه شوې وي چې کوم وجوهات، دې دواړو افسرانو د جلال اباد د نهٔ خالي کولو متعلق خپلو مشرانو ته لیکلي وو هغه بالکل غیر معقول وو. عبدالغفور چې د جلال اباد نوې ګورنر مقرر شوې وهٔ د هغهٔ دپاره په خپل لاس باندې خط نهٔ ورکول هیڅ څهٔ قابل اعتراض خبره نهٔ وه. دومره لوې عهدیدار سردار ته هم دا مناسب وو چې هغهٔ د قاصد په لاس دا خط سیل او میګریګر ته حواله کړې وې. چیټئ د هر چا په لاس چې راغلې وه مګر هغه هم د پوټنګر او ایلفنسټن د لاس لیکلې وه او د هغې په اصلیت کښې هیڅ شک و شبه نهٔ وه. یو فوځي افسر له د خپل مشر افسر حکم بلا چون و چرا منل پکار دي. او په وړو بهانو باندې د یو فوځي افسر دپاره د خپل مشر افسر د حکم تعمیل نهٔ کول یو لوې فوځي جرم دې مګر د سیل او میګریګر اصلي غرض دا وهٔ چې کهٔ مونږ په څهٔ بهانه باندې د جلال اباد په خالي کولو کښې ټال مټول کولې شو او په دې اثنا کښې د ایلفنسټن فوځ په کافي تعداد کښې جلال اباد ته را ورسیږي نو بیا به مونږ دوباره یو ځاې په کابل باندې پیشقدمي وکړو. دویم عذر چې میګریګر او سیل په دې خط کښې کړې دې هغه دا دې چې د نهٔ ویشتم دسمبر خط مونږ ته اوس په نهمه جنوری را ورسیدو. د دې عذر نه غالباً چې د دې انګریزي افسرانو دا مدعا وه چې عبدالغفور خان د خپلو اغراضو دپاره قصداً د دې خط په را رسولو کښې ډیل کړې دې. د کابل نه تر جلال اباد پورې یو سل او پنځهٔ میله لار ده او په لاره کښې وچت وچت غرونه او واوري پرتې وي په دې درو کښې په دې موسم کښې بیحده ډیره واوره پرته وه. او د هر چا دپاره بغیر د نمر د ډیر ډیر راختلو نه په دې لاره سفر کول ناممکن وو. یوولس ورځي څهٔ ډیره لویه عرصه د کابل نه تر جلال اباد پورې د را رسیدو دپاره نهٔ ده. د دې نه علاوه مونږ وړومبې ذکر کړې دې چې پوټنګر په اتویشتم دسمبر یوه پټه چیټئ میګریګر ته لیږلې وه او په هغې کښې ئې ورته په فرانسیسي ژبه کښې لیکلي وو چې تاسو جلال اباد تر دویم حکم پورې باوجود د میکناټن د هدایاتو نه مهٔ خالي کوئ. دا چیټئ هم میګریګر ته یوولس ورځې پس یعني په اتمه جنوری را رسیدلې وه. په اخر کښې سیل دا وئیلي دي چې محمد اکبر خان د چارچاپیره علاقې سردارانو ته دا اعلان استولې دې چې تاسو د جلال اباد انګریزي فوځونو ته په لاره کښې کښینئ او تباه ئې کړئ مګر دا خو هسې د خلې یوه وینا وه چې د هغې دپاره هیڅ قسم تحریري ثبوت نهٔ وهٔ.

د دې نه پس د جلال اباد فوځ تر ډیرې مودې په ارام د ښار دننه په امن پروت وهٔ. صرف دومره خبره شوې وه چې هغوي سره روپۍ بالکل ختمې شوې وې چونکې د دې فوځ درې برخې کارونه به خانانو ته د رشوتونو په ورکولو سر ته رسیدل نو چې دا سلسله ختمه

شـوه نـو بيـا د هـغـوي د بـډو ورکولو تنسته هم وشليده. چنانچه ضروري طور باندې روپۍ د پيښـور نـه طـلـب شـوې او کپتـان ميکيسن د هغه ځايے نه يو معقول رقم د توره باز خان د لال پـورې د خـان پـه لاس هغوي ته را واستولو چونکې په جلال اباد کښې انګريزي افسرانو ته دا مـعـلومه وه چې د کابل فوځ به د جنورۍ په اوله هفته کښې د کابل نه را روانيږي. هغوي سره د دې فـوځ د حـفاظت او په کاميابۍ سره د هغوي جلال اباد ته د را رسيدو ډير زيات فکر وۀ. مګر چونکې درې ټولې د غازيانو په قبضه کښې وے هغوي ته باوجود د ډير انتظار او تشويش د دې فـوځ متعلق د هيڅ قابل اعتبار ذريعې نه د خبر را رسيدو امکان نۀ وۀ. اخر په ديارلسمه جـنـورۍ څۀ وخـت چـې د سيل فوځونه لا هم هغه شان د
فـصيـل پـه تعمير کښې مصروف وو د پهرې يو سپاهي د کابل د طرف نه يو ګوره سور جلال ابـاد تـه را روان وليـدو. هـغـۀ سمدستي نور سپاهيان خبر کړل او د سترګو په رپ کښې ټول افسـران پـه فصيل باندې د تماشې دپاره راجمع شول. ټولو خپل خپل دوربينونه هغۀ طرف ته ولګول مګر د يو سړي نه بغير بل هيڅ څوک د هغوي په نظر رانغلل. او د هر چا په زړۀ کښې دا ويـره پيـدا شوه چې شايد د ټول فوځ نه هم دا يو سړے بچ راووتو. هغوي دا هم وليدل چې دا يو سړے هم په يو ډير خوار او ستړي ټټو باندې په ډير کمزوري حالت کښې را روان دے. او دا شان معلوميده چې کۀ چرې هغۀ ته څۀ امداد ونۀ رسي نو ګړۍ ساعت له هغه هم د اس نه غـورځيـږي. دا سـړے هـم هـغـه ډاکـټـر برائډن وۀ چې د کابل د ټول انګريزي فوځ نه چې په شـمـار کښې قريباً اتلس زره خلق وو ژوندے مګر سخت ژوبل او د لوږې تندو نه نيم مړ او نيم ژونـدے بـچ را ورسيـدو. سـمـدستي د رسالې يوه دسته د هغۀ د راوستلو دپاره د جلال اباد نه ووتـه او پـه هـر يـو فيـرنـګـي بـانـدې د غم او د مصيبت د لاسه يوه تيارۀ راغله. برائډن په ډير کـمـزوري اواز او پـه يـو بې سلسلې ګفتګو کښې په نيمګړې طريقه هغوي ته د غم ټوله قصه بيـان کـړه. د دې واقعاتو په اوريدو سره د جلال اباد په ټوله چاوڼۍ کښې يو عجيب و غريب دهشـت او خـفـګان پيدا شو. او د څۀ وخت دپاره ټول خلق دم په خود شول. مګر څۀ وخت چې د هـغـوي د زړۀ نـه دا خـوف او هيبت څۀ لږ ډير کم شو نو هغوي چارچاپيره د خپل فوځ پـارټـۍ د نورو زخميانو په تلاش کښې وليږلې مګر بل د هيچا پته ونۀ لګيده او دا ټول فوځي ټـولـې نـاکـام واپـس راغلل. د دې نه پس د جلال اباد فوځ سره تر ډيرې مودې چا څۀ جګړه ونـکـړه. او د جنورۍ مياشت په امن کښې تيره شوه. صرف د بريګيډير جنرل وائلډ د فوځ د شکست نه هغوي خبر شول.

څۀ ډيره موده لا نۀ وه تيره شوې چې هغوي ته دا خبر راورسيدو چې محمد اکبر خان پـه لـغـمان کښې د اولس د خلقو لښکرې راجمع کوي او په جلال اباد چپاؤ کول غواړي. دا خبـر ښم هغوي ته راورسيدو چې شاه شجاع لا خو د غازيانو د دباؤ لاندې او لا واقعي طور هم

په غزني او هم په جلال اباد باندې د فيرنګيانو برخلاف د پيشقدمۍ کولو خواهش لري. مګر سره د دې خبر په يويشتمه جنوري شاه شجاع د ميګريګر په نوم يوه پټه چيټۍ د دې مضمون راواستوله چې زما او د فيرنګيانو په منځکښې بارکو قسماقسم غلط فهمي پيدا کړې. يو خوا انګريزانو ته هغوي دا ووئيل چې د دې بغاوت باني شاه شجاع دے او بل خوا د قوم خلقو ته ئ دا ووئيل چې زۀ او فيرنګيان يو شے يو او دغه شان زۀ هغوي په دواړو کښې بدنام کړم.

بيا مخکښې په دې خط کښې شاه شجاع انګريزانو سره د دوستۍ او وفادارۍ د خيالاتو د ظاهرولو نه پس ميګريګر ته دا ليکلي وو چې کۀ چرې تاسو ماله ډيرې روپۍ راواستوئ نو زۀ به دا ټول خلق خپلې پرې ته را واړوم. او په يو څو مياشتو کښې به زۀ په کامله وجه انتظام قائم کړم. ولې د دې چيټۍ سره سمه يوه بله سرکاري چيټۍ د شاه شجاع د طرف نه د جلال اباد د انګريزانو په نوم د دې مضمون راورسيده چې تاسو انګريزانو مونږ سره د عهدنامې په ذريعه اقرار کړے وۀ چې مونږ به دا ملک پريږدو ولې تاسو لا هم هغه شان په جلال اباد کښې ناست يئ. مونږ ته فوراً ووايئ چې ستاسو څۀ نيت دے. د دې خط په را رسيدو د جنرل سيل او د ميګريګر په دماغ کښې قسماقسم خيالات راپيدا شول. د هغوي يو دا خيال هم زړۀ کښې راغلو چې تراوسه پورې مونږ په دې بهانه په افغانستان کښې ناست وو چې شاه شجاع مونږ ته په دې ملک کښې د اندروني نظام قائمولو دپاره ساتل غواړې چې شاه شجاع مونږ ته د دې ملک ته د وتلو حکم راکوي نو بيا څۀ رنګ مونږ په جلال اباد باندې قبضه ساتلې شو. اخر د ډير غور و فکر نه پس هغوي په شپږويشتمه جنوري يوه جنګي جرګه راغونډه کړه او سيل او ميګريګر د هغوي په مخکښې دا رائ پيش کړه چې چونکې مونږ ته د بنګته نه د امداد را رسيدو ډير کم اميد دے او د شاه شجاع دا منشا ده چې مونږ دې دا ملک خالي کړو نو کۀ چرې د دې جرګې مونږ سره اتفاق رائ وي نو مونږ به شاه شجاع سره د دې ملک د پريښودو پحقله خط و کتابت شروع کړو. بيا ميګريګر دې جرګې ته د هغې خط مضمون واؤرولو چې کوم د هغۀ په رائ کښې شاه شجاع ته ليږل پکار وو. د هغې مضمون دا وۀ چې د بادشاه چيټۍ را ورسيده فيرنګيانو جلال اباد او افغانستان صرف د بادشاه دپاره قبضه کړے وۀ او چونکې اوس مونږ ته معلومه شوه چې ستا منشا هم دا ده چې مونږ دې دا ملک پريږدو په دې وجه مونږ واپس هندوستان ته تلو ته تيار يو. مګر چونکې د کابل فوځ سره په لاره ډيره سختي شوې ده دا ضروري ده چې زمونږ د واپسۍ او د دې ملک نه د وتلو شرطونه د فريقينو په منځکښې قطعي طور فيصله شي. شرطونه دا دي: چې مونږ به څلور يرغمال د دې ملک نه د وتلو په ذمه وارۍ کښې بادشاه ته ورکړو او بادشاه دې جلال اباد ته يو فوځ راواستوي چې مونږ سره په طور د بدرګې لاړ شي او مونږ په عزت او په سلامتۍ يعنې سره د خپلې وسلې او د توپو وغيره ووځو. د دې بدرګې سالار دې د شاه

شجاع خپل يو زوی وي او زمونږ دپاره دې د خرڅ خوراک سامان او د باربردارۍ دپاره وسائل مهيا کړې شي. د دې نه علاوه محمد اکبر خان دې د انګريزانو د روانيدو نه وړومبې خپل فوځونه د لغمان نه واپس کړي. او پښتانۀ دې مونږ ته دا د يرغمال راکړي. په پيښور کښې به مونږ د يو بل د يرغمالانو او قيديانو تبادله وکړو. د پښتنو په يرغمالانو کښې دې يو زوی د نواب زمان خان وي يو زوی دې د امين الله خان وي او يو دې د سلطان جان د محمد اکبر خان د ترۀ زوی وي د دوئ نه علاوه څۀ د شنوارو او د افريدو ملکان دې هم وي.

د دې خط مضمون چې په جرګه کښې واورولې شو نو د فوځ نوجوانانو افسرانو بالخصوص کپتان براډفټ په ډيرې سختۍ سره د دې ټول تجويز مخالفت وکړو. اګرچې د دې جرګې د اکثرو ممبرانو دا خيال وۀ چې د جلال اباد نه وتل په نسبت د پاتې کيدو زيات مناسب دي. خير د دې وجه دا نۀ وه چې هغوي ته از روئے انصاف دا مناسب ښکاريدله بلکې د هغوي د رائ اصلي وجه دا وه چې اوس مونږ د تورې په زور په افغانستان کښې بيا خپل حکومت نۀ شو قائمولې. او بله دا چې مونږ ته د کلکتې د ګورنمنټ د طرف نه د امداد د را رسيدو څۀ اميد نشته. د ډيرو وړدو تقريرونو نه پس ټولو دا تجويز خوښ کړو چې د دې خط په ليکلو کښې هيڅ مضائقه نشته. مګر کپتان براډفټ د ټولې جرګې د رائ برخلاف دا تجويز وکړو چې مونږ له په هيڅ وجه افغانستان پريښودل نۀ دي پکار هغۀ ووئيل چې مونږ له به د کلکتې حکومت ضرور امداد راکوي. او کوم نوے ګورنر جنرل چې د لارډ آکلينډ په ځاے مقرر شوے دے هغه به ضرور ځان سره نوي هدايات د انګلستان نه راوړي وي. براډفټ د دې خيالاتو اظهار په داسې سختو الفاظو او نا ملائمه لهجه کښې وکړو چې د هغۀ د تقرير د طرز عمل نه ټول مشران افسران ناراضه شول او هر چا د هغۀ خبرو ته د غوږ ايښودو نه انکار وکړو. اخر هغۀ دا تجويز وکړو چې في الحال دې جرګه خپله اخري فيصله ملتوي کړي او هر يو افسر دې په دې معامله کښې مزيد غور وفکر وکړي. په بله ورځ بيا دا جرګه راغونډه شوه او په ډير جوش بحث مباحثه شروع شوه. بيا ټولو افسرانو چې د هغوي مشران سيل او ميکريګر وو دا رائ پيش کړه چې زمونږ دپاره په زور په دې ملک کښې پاتې کيدل ډير مشکل دي. مګر براډفټ بيا مخالفت وکړو او خپله تحريري رائ ئې سره د وجوهاتو د دې جرګې مخکښې پيش کړه. هغۀ صفا دا خبره وکړه چې دا دروغ دي چې مونږ په جلال اباد يا په افغانستان باندې د شاه شجاع د طرفه قابضان يو، نو ترڅو پورې چې مونږ ته خپل ګورنمنټ د جلال اباد د خالي کولو حکم نۀ دے کړے مونږ له د دې ځاے نه په هيڅ صورت کښې وتل نۀ دي پکار. براډفټ د هغې انګريزي افسرانو نه وۀ چې انګريزي رعب د قائمولو دپاره هغه د انصاف او د ايماندارۍ ټول اصول بالائے طاق ايښي وو. د هغۀ صرف يو مقصد وۀ او هغه دا وۀ چې پښتانۀ دې زمونږ د پنجې نه په هيڅ شان خلاص نۀ شي او مونږ دې بيا د

فوځي طاقت په زور هغوي غلامان کړو. د سيل او ميکريګر هم دا منشا وه چې کومه د براډفټ وه ولې د هغوي دا خيال وۀ چې په جلال اباد کښې د پښتنو مقابله هرګز نۀ شو کولے کۀ چرې په راستي او اتفاق سره په مونږ باندې د کابل نه غازيانو په دا شان يو ځل حمله شروع کړه. اخر د ځو ګينټو د بحث نه پس جرګې دا فيصله وکړه چې دا مجوزه چيټهي دې شاه شجاع ته واستولې شي مګر دا شرط دې ترينه ووهلې شي چې انګريزان به ځلور يرغمال پښتنو ته ورکوي. په دې فيصله براډفټ په ډير طيش کښې راغلو او وې وئيل چې دا خط زمونږ د ملک او د قوم دپاره ډير د بې عزتۍ دے او بيا ئې په اخر کښې ووئيل چې دا به ځومره د خندا خبره وي چې د پيښور نه امدادي فوځ په هغه وخت کښې راورسي چې ځۀ وخت زمونږ فوځ د جلال اباد نه په وتلو کښې وي. د دې په جواب کښې ډيني ووئيل چې کۀ چرې امدادي فوځ راورسيدو نو بيا به مونږ جلال اباد نۀ پريږدو. د ډيني د دې فقرې نه معلوميږي چې دې فيرنګيانو پښتنو سره د عهدنامو په پابندۍ کښې د کومو اصولو نه کار اخستو.

ځۀ وخت چې شاه شجاع ته دا چيټهي واستولې شوه نو د هغې نه ځۀ لږې ورځې پس بيا د هر انګريز په زړۀ کښې بدنيتي پيدا شوه چې مونږ جلال اباد نۀ پريږدو. او دا قصد ئې وکړو چې کۀ د شاه شجاع په جواب کښې مونږ ته د خپلو شرطونو نه د واپس کيدو ځۀ ګنجائش هم معلوم شو نو مونږ به د خپلې چيټهۍ د شرطونو نه واپس شو. ولې کۀ چرې شاه شجاع بغير د ځۀ قسمه ردوبدل نه زمونږ شرطونه منظور کړل نو بيا به مونږ ارو مرو جلال اباد خالي کوؤ. د يو ځو ورځو د انتظار نه پس د شاه شجاع جواب راغلو چې کۀ چرې د جلال اباد انګريزي افسران د خپلو تجويزونو په پيش کولو کښې صادقان وي نو ورومبے دې هغوي په هغې خپل خط مهرونه ولګوي. په دې بيا جنګي جرګه وشوه. مګر دا ځل د براډفټ ډير ملګري پيدا شوي وو او اګرچې سيل او ميکريګر د مهرونو لګولو په حق کښې وو مګر په کثرت رائې دا فيصله وشوه چې شاه شجاع ته دې بل خط وليږلې شي چې د جلال اباد فيرنګيان د جلال اباد د پريښودو په حقله نورې خبرې اترې کول غواړي او د مخکښې دپاره ځۀ چې د هغوي خوښه وي هغه شان کار به کوي. د دې افسرانو په رويه کښې د دې سمدستي تبديلۍ وجه صرف دا وه چې د پيښور نه هغوي ته خبرونه را ورسيدل چې د جلال اباد د فوځ د امداد دپاره ډير زيات فوځونه د پنجاب په لاره راروان دي.

مونږ ورومبے د دې ذکر کړے دے چې په نولسمه فروري 1842ء کښې يوه عظيمه الشانه زلزله د جلال اباد په ټوله علاقه راغلې وه. د دې زلزلې په وجه د جلال اباد هغه استحکامات يعنې ديوالونه، قلاګانې او برجونه چې کوم انګريزي فوځونو قريباً په دريو مياشتو کښې جوړ کړي وو، د نيمې نه زيات راپريوتل. د زلزلې نه ورومبے په زمکه کښې دننه يو ډير

خوفناک غرمبار واوریدې شو او بیا زمکه په ډیر شدت سره ولړزیده. په ښار کښې دننه قریباً قریباً ټول کورونه راپریوتل او د بالاحصار دیوالونو ته هم ډیر نقصان ورسیدو. دې زلزلې د جلال اباد د فصیل دیوالونه په یو منټ کښې دومره راوغورځول چې د یو حمله آور فوځ د یوې میاشتې ګوله باری هم دومره تباهي نهٔ شوه کولې. کهٔ چرې دا وخت اکبر خان چې د جلال اباد نه لږ لرې پروت وهٔ په جلال اباد باندې حمله کړې وې نو یقیني خبره ده چې انګریزي فوځ به ئې د جلال اباد نه وښکلے وهٔ. مګر هغهٔ دا ټوله موده په دې انتظار کښې وهٔ چې هر کله ما له د کابل نه امدادي فوځ راشي نو پسته به حمله کوم. ولې د کابل نه دا کومک نهٔ خو هغهٔ له چا راواستولو او نهٔ د هغهٔ په لاس کښې توپې وې چې په فصیل باندې ئې ګوله باري کړې وې. د کابل سردارانو خو د انګریزي فوځونو د وتو سره پخپله کښې نښتي وو او پخپلو غوښنو اخته وو. هغوي ته د دې خبرې فرصت چرته وهٔ چې د اکبر خان په درخواستونو او خطونو باندې ئې غور کړے وے. دیخوا د جنرل سیل د فوځ دا یقین وهٔ چې اکبر خان به هیچرې هم د حملې کولو دا موقع د ګوتو نه نهٔ وباسي. ځکه چې هغوي خو د کابل د خانه جنګو او بې اتفاقو نه خبر نهٔ وو او محمد اکبر خان سره خپله هیڅ باقاعده فوځ نهٔ وهٔ چې په هغوي ئې حمله کړې وې. ولې سره د دې چونکې انګریزانو سره د دې خبرې ډیر فکر وهٔ چې د زلزلې په دویمه ورځ به محمد اکبر خان ضرور حمله کوي نو هغوي د زلزلې ختمیدو سره سمدستي داسې په جوش او تندئ سره د مرمت کار ته لاس ورته کړو چې ټوله شپه هر یو افسر او هر یو سپاهي په هغې کښې پوره پوره حصه واخسته او تر سحره پورې د مرمت کار قریباً قریباً ختم شو د دې نه پس د جلال اباد فوځ ته څهٔ نوره قابل ذکر واقعه پیښنه نشوه. ما سوا د هغو معرکو نه چې کومې د هغوي او د محمد اکبر خان په منځکښې د هغهٔ د بې قاعدې د اولس د لښکرو سره وشوې. او د هغې ورومبے ذکر شوے دے. خلاصه د ټولې خبرې دا ده چې د اکبر خان تجویز دا وهٔ چې د جلال اباد فوځ زهٔ دا شان قلا بند وساتم چې په هغوي د چارچاپیره نه خرځ خوراک بند کړم. ځکه چې د چپاؤ دپاره نهٔ خو هغهٔ سره فوځ وهٔ او نهٔ سامان.او د هغهٔ دا تجویز تردے حده پورې کامیاب شوے وهٔ چې د جلال اباد د ښار دننه په لږه موده کښې د انګریزي فوځ خرځ خوراک ډیر کم شو د اسونو دپاره واښهٔ او دانه بالکل خلاصه شوه او ګوله بارود هم په ختمیدو راغلل. مګر په دې تجویز باندې د عمل کولو دپاره هم د فوځ ضرورت وهٔ او هرڅومره چې هغهٔ کابل ته خطونه ولیکل مګر څهٔ نتیجه ئې را ونهٔ وتله.

دا حقیقت دے چې پښتنو همیشه پخپلو قومي تحریکونو کښې د فتحې نه پس شکست خوړلے دے. هر کله چې هغوي کامیابي حاصله کړې ده نو د قام د مشرانو د بې اتفاقی، خودغرضی او خانه جنګی په وجه هغوي د هغې فتحې د مېوې خوړلو نه محروم پاتې

شوي دي. د کال 42-1841ء جنګ ازادي هم د دې قاعدهٔ کليه نه څهٔ مستثنیٰ نهٔ وه. دې کښې شک نشته چې کهٔ چرې د پښتنو بې اتفاقو او د هغوي خودغرضو د جنرل پالک امداد نهٔ وے کړے نو قبل د دې نه چې هغه د جنرل سيل د فوځونو امداد ته رارسيدلے وے د سيل د يو سپاهي يا افسر نوم نشان به هم نهٔ وهٔ پاتې شوے. جنرل پالک پيښور ته په پنځمه فروري را ورسيدو او محمد اکبر خان د کابل د فوځ د معاملې نه په پنځلسمه جنوري فارغ شوے وهٔ. کهٔ چرې د کابل سردارانو په هغې اتفاق او يووالي چې کوم په هغوي کښې د بغاوت په ابتدا کښې موجود وهٔ د محمد اکبر خان د مطالبې او تجويز په مطابق هغهٔ له د کابل نه فوځونه او توپې رااستولې وے نو محمد اکبر خان به په ډيره اسانتيا د جلال اباد معامله د خپل خواهش مطابق فيصله کړې وه. او جنرل پالک به لا هم هغه شان په پيښور کښې په ډيرې مستقل مزاجۍ او استقامت او حوصله خپلو فوځونو ته په ډاډ ورکولو کښې مصروف وهٔ.

د کابل د دې پرو جنبو او پخپلو کښې د خانه جنګو ذکر مونږ ورومبے هم کړے دے په دې ځاے کښې صرف دومره ذکر کول مناسب دي چې د انګريزانو په ويستو کښې نهٔ صرف بارکزي شامل وو بلکې د شاه شجاع هم دا خواهش وهٔ چې انګريزان دې د افغانستان نه وځي. مګر په بارکزو او په شاه شجاع کښې دا فرق وهٔ چې شاه شجاع به يو خوا قام ته وئيل چې زهٔ تاسو سره يم او فيرنګيان د دې ملک نه ايستل غوارم ولې بل خوا ته به ئې انګريزانو سره پټ خط و کتابت کولو چې کهٔ چرې تاسو ماته نورې روپۍ راکړې نو زهٔ به دا بغاوت ډير زر ختم کړم. شاه شجاع يو سخت خودغرض سړے وهٔ د قوميت او عزيزولۍ د غيرت خو په هغهٔ کښې نوم نشان نهٔ وهٔ. هغهٔ فيرنګيان د افغانستان نه ويستل خو د خپل غرض دپاره. ځکه چې د هغوي په موجودګۍ کښې د هغهٔ هيڅ وس نهٔ چليدو او د ملک په خانانو او سردارانو او د اولس په خلقو کښې هغه بالکل صفر وهٔ. د هغهٔ خودداری او شاهي حيثيت دا نشوه ګواره کولے چې سره د بادشاهۍ د نوم دې د ملک په اندروني معاملاتو کښې د يو انګريز کپتان او لفټيننټ اختيار دې هم زما نه ډير زيات وي. مګر بارکزو دا تحريک د خپل قوم او د خپل ملک د ازادولو په خاطر شروع کړے وهٔ. د شاه شجاع د دې منافقانه رويې باوجود بارکزو په قوم کښې د اتفاق پيدا کولو په خاطر شاه شجاع سره د راضي نامې خبرې اترې شروع کړې او اګر چې د ابتدائے تحريک نه نواب زمان خان د قوم په اتفاق سره بادشاه منتخب شوے وهٔ مګر څهٔ وخت چې انګريزي فوځ د کابل نه ووتو نو زمان خان په ډيرې خوشحالۍ د بادشاهۍ نه دست برداره شو او شاه شجاع ئې خپل بادشاه او ځان ئې د هغهٔ وزير کړو. امين الله خان د هغهٔ نائب وزير شو. د څهٔ وخت دپاره خو شاه شجاع په ظاهره بارکزو سره د اتفاق پت وپاللو مګر لا ډيره موده نهٔ وه تيره شوې چې هغهٔ بيا د بارکزو د تباه

کولو سازشونه راواخستل. او انگریزانو سره ئې پټ خط و کتابت د دې غرض دپاره روان کړو. ورومبے خط په یویشتمه جنوری 1842ء هغهٔ میکریګر ته دا شان ولیکلو :

"کپتان میکریګر ته دې معلومه وي چې د کابل په ټولو واقعاتو باندې به تهٔ اوس خبر شوے یې. سره د دې چې ما به تاسو ته همیش دا وئیل چې دا خلق ډیر دوکه باز خلق دي مګر تاسو پوهه نهٔ شوئ. او زما د دشمنانو په وینا مو عمل وکړو. یعنې د بارکزو په وینا. تر دې حده پورې چې اوس دې حال ته را ورسیدئ. د بارکزو مطلب دا وهٔ چې زما او د انګریزانو په مینځکښې بې اتفاقي او دشمني پیدا شي. فیرنګیانو ته به هغوي وئیل چې دا بغاوت زما په انګیخت شوے دے او مسلمانانو ته به هغوي وئیل چې زهٔ او فیرنګیان یو یُو. او دغه شان ئې زهٔ په ټول اولس کښې بدنام کړم. خیر دغه به نصیب وهٔ. زهٔ په دې ټولو واقعانو خفه او غمژن یم خدائے دې زما د زړهٔ دا مراد پوره کړي چې زما د دشمنانو قسمت هم د سر ولیم میکناټن او د ټریور په شان شي. د بغاوت په ابتدا کښې ما هغوي ته ډیر ځله ووئیل چې هر څیز بالاحصار ته راوړئ ځکه چې هغه مضبوط ځائے دے. ولې هغوي زما ونهٔ منل، بیا ما هغوي ته ووئیل چې څهٔ مهلت واخلئ چې زهٔ پښتنو سره ټولې معاملې فیصله کړم. ما خپل ټول مال چې په دومره محنت جمع کړے وهٔ ولګولو، او دغه شان ټول لوے لوے خلق ما خپل ځان طرف ته کړل. خدائے دې وکړي چې هغوي بدستور زما وفادار وي. بغیر زما نه دا پښتانهٔ بل هیڅوک هم په قابو کښې نشي راوستې. او نهٔ د دې ملک حکومت چلولې شي. ایسټ انډیا کمپنی سره زما وفاداري او دوستي ټول جهان ته ښکاره ده او اوس هم ټولې دنیا ته لکه د رڼا ورځې معلومه ده. کهٔ چرې ما سره لږه خزانه وے. چې ما د ژمي په باقي دوؤ دریو میاشتو کښې په هغې ځان مضبوط کړے وے نو کهٔ خدائے کړي نو په دې ملک کښې بل هیڅوک داسې نشته چې ما وباسي او د خدائے په فضل سره به هر یو کار زما د خواهش مطابق فیصله شي. د دې ځائے خلق د روپو نه څوک نشي را اړولې. خدائے دې وکړي چې زما د زړهٔ مراد حاصل شي. د دې نه ورومبے ما په دې معامله کښې څلور لکه روپۍ ولګولې او بیا مې دوه لکه روپۍ نورې ورکړې ما سره اوس هیڅ نشته. کهٔ چرې ما له څهٔ روپۍ لاس له راشي چې زهٔ پرې دا سرې ځان طرف ته راواړوم نو کهٔ د خدائے رضا وي نو هر یو څیز به زما د مرضی مطابق فیصله شي. زهٔ امید کوم چې په یو څو میاشتو کښې به زهٔ ډیر سوارهٔ او پیاده را یو ځائے کړم نو بیا به هیڅوک هم ونهٔ خوځي. خدائے دې وکړي چې زما د زړهٔ مراد حاصل شي.

د دې چیټۍ در رسونکے به نور ټول واقعات تاسو ته زباني ووائي. ښه به دا وي چې تاسو زما دا چیټۍ یا پیښور ته او یا ګورنر جنرل ته واستوئ. او ډیر زر ئې ماته جواب راکړئ. هر کله چې تاسو ته دا معلومه شي چې زما دا خط پیښور ته ورسیدو نو ماته اطلاع راکړئ چې زما تسلي وشي چې دا خط د دې ملک نه ووتو ځکه چې زما مخالف خلق د ټام خلقو ته وائي

چې زهٔ د فيرنګيانو ملګرے يم. تر څو پورې چې زما پښې ښې لګيدلې نهٔ وي نو د څهٔ مودې دپاره به دا ضروري وي چې ماته روپۍ راوليږلې شي. هر کله چې ما خپل طاقت په دې ملک کښې قائم کړو نو بيا به ماته د هيڅا ضرورت نهٔ وي ټول کار به اسان شي. په دې خبرو باندې زما د ملک خلق بالکل خبر نهٔ کړئ. خدايے به څهٔ موده پس هم هغه څهٔ وکړي چې په کوم کښې زما او ستاسو ښيګړه وي. خدايے دې زما د زړهٔ مراد پوره کړي. د دې چيټۍ در وړونکے به تاسو د ټولو معاملو نه خبر کړي خو چې څهٔ وخت ماله روپۍ را ورسيدې او ما خپل ځان ښهٔ په ځايے کړو نو زهٔ به دا خلق دا شان بيا په خپل قابو کښې راولم چې کهٔ زهٔ ورته حکم وکړم نو هغوي به د صاحبانو پښې هم په سر وچتې کړي."

بيا هغهٔ يو بل خط د ګورنر جنرل په نوم د کابل نه وليږلو چې هغهٔ ته په دويمه فروري ورسيدو د هغې خط مضمون دا شان وهٔ :

" زما دوست ته دې معلومه وي چې زهٔ بادشاه يم او خپل خلق زهٔ ښهٔ پيژنم. دا ضروري ده چې ټولو خلقو سره په خپل خپل ځايے مناسب سلوک وشي. چا سره د مهربانۍ او چا سره د سختۍ. زما بعضې مخالفو خلقو زما د ويرې نه سر وليم ميکناټن او سر اليګزنډر برنس سره پناه واخسته نو بيا ما هغوي ته هيڅ نشو وئيلے. ولې هغوي جګړې پيدا کړې. تيرو کلونو راسې ما ټول صاحبان او بالخصوص سفير صاحب چې هغه ماته د خپل ځان نه هم ډير ګران وهٔ خپل ځان سره مساوي ګڼل. او د هغوي د رضا نه بغير مې بل څهٔ نهٔ کول. دا د خدايے رضا وه چې زهٔ دې هغه څهٔ په سترګو ووينم چې کوم ما ليدل نهٔ غوښتل. په بل چا دې خدايے پاک دا شان ازميښت نهٔ راولي. دا چرې ممکن کيدې شي چې زما دې دا خواهش وي چې زهٔ دې خپل دشمنان او د هغوي د خاندان خلق د خپلو دوستانو قائم مقام ووينم.

يو ځل دوه ما تا ته هم ليکلي وو چې يو سړے دې ملک ته راوليږه چې د ټول ملک د صورت حال متعلق تفتيش او رپورټ درته وکړي مګر تا په هغې هيڅ ونهٔ کړل. دوه درې کاله خو ما خلقو له تسلي ورکړه هغوي به ماته وئيل چې کهٔ چرې تهٔ بادشاه نهٔ ئې نو چې مونږ پوهه شو چې فيرنګيان بادشاهان دي. او بيا هغوي ما ته ووئيل چې مونږ ستا د خاطره دوست محمد خان د خپل ملک نه وويستو ولې تا مونږه بالکل د ځان نه نااميده کړو. او اوس زمونږ نه ښځې هم لاړې او ملک هم لاړو. او اګر چې په ابتدا کښې فيرنګيانو مونږ له تنخواه ګانې راکولې مګر هغه هم اوس هغوي بند کړې. ما د خلقو د دې خبرو څهٔ تسلي نهٔ شوه کولې ولې ميکناټن ته مې د هغوي دا خبرې وکړې او ورته مې ووئيل چې هر کله چې وي په دې ملک کښې به فساد پيښ شي. ولې هغهٔ زما وا نهٔ وريدل. ما هغهٔ ته ووئيل چې دا خلق تا غلوي ولې هغهٔ په ما باندې اعتبار ونکړو او ما ته ئې ووئيل چې په ارام اوسه زهٔ به ټول ملک په دوؤ پلټنو باندې رعيت کړم. هغه ماته دا هم ووئيل چې تهٔ ځنې مخالف قيد او خارج کړه ما هم دغه شان

وکړل. ولې هغوي څان نظام الدوله ته ورسولو او د هغهٔ په ذریعه ئ میکناټن ته رسائي وشوه. میکناټن ماته وئیل چې تهٔ دوئ پریږده ما هغوي پریښودل او اوس زهٔ هم د هغې خلقو د لاسه په مصیبت کښې یم.

څهٔ وخت چې میکناټن د دے ملک نه په ښکته د روانیدو نیت کړے وهٔ نو ما هغهٔ ته ووئیل چې ما هم څان سره بوځه. ځکه چې زهٔ په ډیر تنګ حال کښې یم. ما هغهٔ ته د ټولو واقعاتو حال ووئیلو ولې هغهٔ زما په وینا غوږ کینښودو ماهغهٔ ته ووئیل چې ما ته هره ورځ د دي خبرې شکایتونه راځي چې د پښتنو ښځېئ د برنس د منشي کور ته بوتلې کیدے شي او هغه ځاے کښې هغهٔ سره په شراب نوشی کښې مصروف وي. اوچاونی ته هم په اسونو باندي ښځې بوتلې کیدې شي. ما هغهٔ ته ووئیل چې دا ما په خپلو سترګو لیدلي دي هر کله چې خلقو ما ته د دي خبرو فریاد وکړو نو ما هغوي ته ووئیل چې څوک دي چې دا شان کارونه کوي چې زهٔ ئ تفتیش وکړم او بیا مې خلقو ته ووئیل چې صاحبان مهٔ بدناموئ. وړومبے خو ما هغوي له تسلي ورکړه او بیا مي ورله تنبیه ورکړه او ورته مي ووئیل چې هر څوک چې ستاسو ښځو ته لاس واچوي نو ما خبر کړئ زهٔ به ئ تفتیش وکړم.

دے خلقو وړومبے هم دغه شان کارونه کړي دي لکه چې څهٔ رنګ ئ اوس وکړل. دوئ زما وړور محمود په بالاحصار کښې بندیوان کړے وهٔ په هغه موده کښې د سازش مشران مختار الدوله او احمد خان نورزي وغیره وو. په ظاهره خو هغوي بهانه دا کړې وه چې دا د شیعه ګانو او د سنیانو په منځکښې جګړه ده مګر معلومه شوه چې دا څهٔ ډیره لویه معامله وه. او هغوي ته دا معلومه شوه چې دا معاملې بغیر زما نه نشي فیصله کیدے. په هغه موده کښې زهٔ په کاکړو کښې وم، خانانو ما پسې سوال جواب وکړو او بیا ټولو زما حکم ومنلو. په موجوده بغاوت کښې خلقو وئیل چې په چاونی کښې کروړونه روپی دي. راځئ چې اسلام له تقویت ورکړو. دا دغه شان خلق دي. درې څلور سپي خو مړهٔ شو هم دغه هومره لا پاتې دي.

نظام الدوله سپے وهٔ او هغهٔ مونږ ټول تباه کړو. ما سفیر ته سوال وکړو چې خلق مهٔ تباه کوه ولې نظام الدین درانیانو ته ووئیل چې بادشاه او سفیر به تاسو تباه کړي. زهٔ به ستاسو په مرسته ودریږم ولې کپتان ټریور به ما پرې نهٔ ږدي. دغه شان خلق وچت شول. زهٔ په دې ډیر ناراض شوم ولې بالکل ناچار وم. اوس کهٔ د خداے رضا وي نو د دوستانو په امداد سره به ډیر څهٔ وشي. ټول خلق ستاسو په وجه زما برخلاف وو هغوي ماته سوال جواب وکړو چې تهٔ څان د فیرنګیانو نه بیل کړه او د خپل دین په خاطر پخپله بادشاه شه. په دې زمانه کښې بعضې صاحبان په بالاحصار کښې وو. ما په هغه ساعت خو هغوي له څهٔ سوال جواب ورنکړو مګر سفیر مې په دې خبر کړو. هغهٔ ما ته ووئیل چې دا قسم خلق د څان نه لرې کړه. ما هغوي

د ځان نـه وریشتـه کړل او ورته مې ووئیل چې هر څهٔ زما د صاحبانو په زور شوي دي. هغوي ماته په جواب کښې ووئیل چې بیا به پښیمانه ئ. تر څو ورځو پورې د بالاحصار، د چاوڼې او د بالا برج په خواؤشا کښې جنګ وشو. دغه وخت ما سفیر ته سوال جواب وکړو چې سره د خپل ټول اسباب بالاحصار ته راشئ. په بالاحصار کښې فوځونه تر یو یا دوؤ کالو پورې ښه مقابله کولے شي. درې یا څلور زره خلق دې وویستلې شي او توپې او سامان دې راوړې شي. د ډیر بحث او مباحثې نه پس ماته هیڅ جواب را نهٔ کړې شو. ما ورته ووئیل ډیره ښه ده ستاسو خوښه ده. څو ورځې پس ما چاوڼې ته سوال جواب ولیږلو چې پام کوئ چاوڼې پرې نهٔ ږدئ. زهٔ د دشمن په نیت خبر وم چې هغوي په فوځ باندې د حملې کولو نیت کړے دے. بیا ما پنځهٔ شپږ لکه روپۍ ولګولې او ډیر خلق مې د دشمن نه ځان طرف ته راواړول. ولې هغوي ماته ووئیل چې تهٔ ځان د فیرنګیانو نه بیل کړه. په دې وجه درې یا څلور بارکزي زما نه بیل شو او اګر چې زما په خلقو اعتبار نهٔ وهٔ ولې ما دا شان کار وکړو چې وړومبے مې هغوي له درې یا څلور لکه روپۍ ورکړې او بیا چې هغوي نورې وغوښتې نو په دې خیال مې ورله دوه درې لکه روپۍ نورې ورکړې چې کهٔ زهٔ انکار وکړم نو هغوي له به بهانه په لاس ورشي او زما نه به جدا شي. ولې ما هغوي له هغه ټولې روپۍ ورکړې‌چې کومې ماسره وے او اوس زهٔ بالکل بې ماله یم. کهٔ چرې ما سره روپۍ وے نو ما ښکاره په ښکاره ډیر څهٔ کولے شو. ولې بغیر د روپو نه هیڅ نشي کیدې. دا ټول سپے خلق دے کهٔ چرې ما سره روپۍ وے نو ما فوځونه جمع کولے شو او کوم زاړهٔ هندوستانیان چې ما له اوس بربنډ راغلي دي هغوي ټول بیا ما سره د نوکر کیدو خواهش مند دي. ولې ما سره روپۍ نشته. په زړهٔ کښې زهٔ تاسو سره یم اګر چې ټوله دنیا اوس ما نه جدا شوې ده. نظام الدوله ته د دې بغاوت د کیدو حال یوه شپه وړومبے معلوم وُهٔ مګر نهٔ خو هغهٔ ماته ووئیل او نهٔ ئ سفیر ته، چې مونږ د هغې تدارک کړے وے. د بغاوت سازش کونکو نورو خلقو ته ووئیل چې بادشاه زمونږ ملګرے دے. او څهٔ وخت چې شهزاده فوځونو سره هغوي له ورغے نو دې نمک حرامو ووئیل چې ټول زمونږ ملګري دي. کهٔ چرې زما په نصیحت عمل وکړې نو اوس هم ډیر څهٔ کیدې شي او کهٔ نهٔ وي نو زهٔ به مکې ته روان شم. د دې ځاے خلق ډیر پاخهٔ نمک حرام دي کهٔ نهٔ وے نو ما به په ډیره اسانتیا سره ټول ملک صفا کړے وهٔ او ایران او خراسان هم.

څهٔ چې په قسمت کښې وو هغه وشو. ما دا څهٔ په خوب کښې نهٔ دي لیدلي بلکې هر څهٔ مې پخپلو سترګو لیدلي دي. خداے دې دا غم لرې کړي او زما د دشمنانو او د هغوي د خاندان د خلقو دې هم دغه شان حال شي چې څهٔ رنګ زما د دوستانو شو. په دنیا کښې چرې چا داسې خلق هم لیدلي دي چې چا خپلو دشمنانو ته د خپل قتل سامان مهیا کړے وي. اکبر سپے د ترکستان نه لکه د فقیر پشان راغے. د هغهٔ دشمني صاحب لوګ او ما سره ظاهره

باهره وه ولې لکونه روپۍ هغهٔ له د دې دپاره ورکړې شوې چې هغه انګريزي فوځ په حفاظت سره هندوستان ته ورسوي ولې د دې څهٔ نتيجه وشوه. د دې خبرو اترو په منځکښې ما څو څو ځله سفير ته سوال جواب وکړو چې تهٔ خپل دشمن ولې پالې مګر زما په خبرو چا غوږ کښېښودو؟

ټول مسلمانان ستاسو په وجه ما نه واوړيدل او تر دريو مياشتو پورې ستاسو په وجه ماته ډير تکليفونه او مصيبتونه پيښ شول. او بيا په اخر کښې ئ سفير محمد اکبر ته د ټول ملک د حواله کولو اقرار وکړو او زما دپاره ئ يو لک روپۍ سالانه مقرر کړې او په هندوستان کښې څلور لکه. ولې ماته معلومه وه او دا مې وئيل هم چې څهٔ وخت تاسو د چاونۍ نه وځئ نو تاسو به بالکل تباه کړې شئ. او هم هغه شان خبره وشوه. زمونږ په منځکښې هيڅ ناچاقي نهٔ وه او نهٔ به بيا چرې پيدا شي. څهٔ وخت چې ما صورت حالات وليدل نو ما د محمد اکبر نه د خلقو را اړولو دپاره روپۍ خرڅ کړې ولې اوس زهٔ هيڅ نشم کولے. ما ميګريګر ته او غزني او قندهار ته هم خبرونه وليږل. لاره غير محفوظ ده نو زهٔ سم نهٔ شم ليکلے."

د دې قسم خطونه به شاه شجاع وقتاً فوقتاً ميګريګر ته ليکل (ځکه چې پوټنګر د محمد اکبر خان په لاس کښې يرغمال وهٔ) او پټ پټ به ئ ټول واقعات هغهٔ ته ښکاره کول. اخري چيټۍ ميګريګر ته د هغهٔ د طرف نه په اووم مارچ رسيدلې وه د هغې مضمون دا دے:

" دا شان حال دے چې زهٔ شپه او ورځ ستاسو متعلق فکر مند يم. خدائے دې زمونږ په مرسته شي ما دا نهٔ غوښتل چې زهٔ دې داسې ورځ ووينم. ټوله ورځ ما سره هم د دې فکر وي. بدبخت محمد اکبر چې د کومې ورځې نه لغمان ته رسيدلے دے نو هغهٔ په هغه روپو چې کومې هغهٔ له ورکړې شوې وے ځان له ټول کار سنبال کړے دے. د هغې طرف نه کابل ته چيټۍ راغلے او هغهٔ سره د شامليدو دپاره خلقو له روپۍ ورکړې شوې. اخر دا روپۍ بندې شوې او ځنې خلق په لاره په بتخاک کښې لوټ شول. اخر خلق د غزا په خيال روان شول. ولې په دې نيت ډير کم خلق ځي. ما قريباً د يوې مياشتې نه فوځونه جلال اباد ته د روانيدو نه حصار کړي دي ولې تاسو نه ماته هيڅ خبر رانغلو. ما په ټولو مسلمانانو کښې ځان ستاسو په وجه بدنام کړو. ولې تاسو پرې هيڅ پوهه نهٔ شوئ. دا خو د مرګ او د ژوند خبره ده. تر دې وخته پورې ستاسو د ارادې هيڅ پته ونهٔ لګيده. زهٔ نهٔ پوهيږم چې زما خنګه بده ورځ ده او دا خلق هم زما نه خفه دي. او ماته وائي (چې د بادشاه رضا نهٔ ده چې مونږ جلال اباد ته لاړ شو) هغه د حق دين په تباه کولو رضا دے. خدائے دې زمونږ مددګار شي. هيڅوک نشي وئيلے چې انګريزي فوځونه به کله را رسي. کهٔ چرې کارونه دا شان کيږي نو د هندوستان به څهٔ حال وي سره خو بالکل ستاسو ملګرے يم خدائے دې ماته خير پيښ کړي. کهٔ چرې انګريزي

فوځونه لس پنځلس ورځو کښې راورسيدل نو خير به شي. ولې که را ونه رسيدل نو څه کول پکار دي. هر څه چې ته مناسب ګڼې هغه ماته صفا صفا وليکه چې سړے پوهه شي او د هغې مطابق انتظام وکړې شي. زه هميش په دې فکر کښې يم چې څه رنګ به هغه سړي او بيبيانې (يعنې انګريزي قيديان سړي او ښځې) زما لاس ته راشي چې هغوي په حفاظت کښې شي او دا بدمعاش محمد اکبر ورته څه نقصان ونه رسوي.

ما محمد شاه غلجي ته پيغام ليږلے دے که چرې دې انګريزي قيديانو ته څه نقصان ورسيدو نو زه به ستا او ستا د کور د خلقو نه د هغوي بدل واخلم. او د ټولې خيلخانې بيخ به دې وباسم. او تا به هم ګرفتار کړم. خدائے به واړه خير کړي اګر که صورت حال ډير پيچيده او ګران دے.

دا بدمعاشان پښتانه بيشماره ډير قسمونه خوري.ولې زړونه ئې د شيطانت نه ډک دي. خدائے د دوئ وشرموي د ټولې معاملې اصليت هم دغه دے که چرې ستا خيال وي چې کاميابي به وشي او انګريزي فوځونه به را ورسيږي نو چې څومره زر شي هغه هومره به ښه وي. دا څه معمولي معامله نه ده.

شمس الدين خان چې غزني ته استولے شوے دے ما هغه ته حکم کړے دے چې په انګريزي فوځونو باندې په سختئ حمله مه کوه. تر څو پورې چې ما انګريزانو سره څه اقرار نه وي کړے. ما نه خپل ټول غمونه هير دي او ستاسو دپاره غمژن يم. نه مې د شپې ارام شته او نه د ورځې او نه ما سره څه بل فکر شته. که چرې زه پخپله جلال اباد ته درغلم نو بيا زه د خپلې رضا مطابق معامله فيصله کولے شم. دې کښې دوه فائدې دي او يو نقصان. زه حيران يم. خدائے پاک دې ما د دې غمونو نه خلاص کړي دا هر څه چې وشو نو د ناعاقبت انديشئ نه وشو اوس دې خدائے زما مل شي.

ما به هميش سروليم ميکناټن ته وئيل چې د دې معاملې انجام به خراب شي د کومې ورځې چې هغه د کابل نه د بمبئ د تلو انتظام وکړو نو زه د هغه نه وړومبے روانيدو ته تيار وم. ما هغه ته وئيل چې د دې ځائے د معاملو صورت ماته ښه نه ښکاري ولې هغه زما په خبرو غوږ کښينښودو. د دې خط در وړونکے به د نورو واقعاتو نه تا خبر کړي زه څه کولے شم. دا خلق به په دنيا کښې ډير لعنتيان وي. که چرې ما سره روپۍ وے نو ما به خپل فوځ راجمع کړے وه بيا د چا څه طاقت وه چې ستاسو سپي ته ئې هم نقصان رسولے وے."

د دې خط په جواب کښې ميکريګر چې کوم خط شاه شجاع ته ليکلے دے هغه هم مونږ لاندې درج کوؤ :

"نهم مارچ. د اعلىٰ حضرت خط چې د يو اعتباري سړي په لاس راليږلے شوے دے مونږ ته راورسيدو. که د خدائے رضا وي او ته تر يوې مياشتې پورې ډيل کولے شے نو څه چې

ستا رضا وي هغه به بيا کيدے شي. تهٔ بيغمه اوسه ځکه چې د جنرل پالک فوځونه سره د سکهانو د فوځونو پيښور ته راورسيدل. اوتهٔ دا شان وګنه چې هغوي هلته دلته راورسيدل. هر څهٔ چې د دې خط در ورونکے تا ته ووائي نو په هغې باور وکړه."

د دې تاريخ لوستونکو ته به د دې خطونو د لوستو نه پس د شاه شجاع د قوميت، د هغهٔ د ايمانداری او پښتو ښه اندازه لګيدلې وي. د داسې سړي نه دا اميد کول فضول وو چې هغه به قوم سره په اتفاق ملک ته د ښيګړې رسولو کوشش وکړي.

په دې زمانه کښې د تحريک ازادۍ مشرانو ته د روپو سخت ضرورت وهٔ ځکه چې بغير د روپو نه هغوي نهٔ خو باقاعده فوځ جمع کولے شو او نهٔ ئې د غازيانو روزانه خرڅ خوراک او ګوله بارود پوره کولے شو. په ابتدا کښې شاه شجاع هغوي له درې څلور لکه روپۍ ورکړې ولې هر کله چې محمد اکبر خان کابل ته د توپو او د ميخزين او باقاعده فوځ د پاره خطونه وليکل نو د کابل په خلقو کښې هيڅا هم بې تنخواه تلو ته غاړه نهٔ کښيښوده. او روپۍ هيڅا سره هم نهٔ وے. د دې نه علاوه د تحريک په مشرانو کښې خپل قديمي دشمن يعنې بغض، حسد او باهمي خانه جنګو خپل کار شروع کړو. هره ډله د بلې ډلې د طاقت نه خلاف وه. اکبر خان پخپله په دې ورځو کښې په لغمان کښې ديره وهٔ او د پالک او سيل د فوځونو د مقابلې دپاره ئې لښکر د راجمع کولو په غرض په ځان شپه او ورځ يو کړي وو. او کابل ته به ئې هره ورځ د امداد دپاره خطونه ليکل. په کابل کښې د تحريک ازادۍ ځنې ځنې مشرانو دا خيال وکړو چې کهٔ چرې مونږ اکبر خان له د کابل نه امداد واستولو او هغهٔ انګريزانو له شکست ورکړو نو بيا به د هغهٔ طاقت دومره زيات شي چې هغه به د ټول افغانستان مالک شي. له دې کبله هغوي دا فيصله وکړه چې مونږ خپل ځان له يو فوځ د جنرل پالک مقابلې ته درهٔ خيبر له ليږو. ولې بيا د تنازعو په سبب او د روپو د نشت په وجه تر ډيرې مودې پورې په دې تجويز هغوي څهٔ عمل ونکړې شو. اخر شاه شجاع هم ښکاره په دربار کښې ووئيل چې اوس زهٔ د خپل مذهب په حمايت کښې ودريدل غواړم او د کافرو برخلاف جهاد کوم. په دربار کښې خو هغهٔ د جهاد اعلان وکړو ولې پټ هغهٔ کنولې ته چې په کابل کښې قيد وهٔ، سرے واستولو چې زما ځان او زرهٔ انګريزانو سره دے او بيا ئې بيشماره خطونه ګورنر جنرل د هغهٔ ايجنټ کلارک، ميکريګر او نورو انګريزانو ته وليکل. چې زهٔ د انګريزانو ډير وفادار ملګرے يم. خو ما له روپۍ راواستوئ ځکه چې بې روپو کار نهٔ کيږي.

اکبر خان يو ځل بيا کوشش وکړو چې د کابل سرداران خپلې کورنۍ جګړې يو خوا ته کړي او د جلال اباد په طرف فوځي پيشقدمي وکړي چنانچه هغهٔ يوه سخته چيټۍ کابل ته وليږله او سردارانو ته ئې وليکل چې د پښتنو د قوم د تاريخ په داسې خطرناک وخت کښې ستاسو به منځکښې دا جنګونه او جګړې. حسدونه او بغضونه څومره د شرم او د افسوس

خبره ده. سر جان کے د خپل تاریخ په دریم جلد صفحه 108 باندې د دې خطونو متعلق دا رنګ لیکي:

" On the 2nd of April Mohan Lal worte from Kabul; a letter has been received from Mohammad Akbar Khan, which was carried by Aminullah Khan and read by the Shah. It also passed under my sight through the kindness of the Persian chiefs. It contained that Mohammad Akbar Khan has been always writing to send the troops to assist him against Jalalabad but no body has heard him. Now he has been informed by his trusty men at Peshawar that five battalions of the English have reached Hasanabdal, and when they join the forces at Peshawar they, in company with the battalions of the Najibs of the Sikhs, will force their march through Khyber, though he has sent Sultan Jan with a few hundred men to reinforce the people of Khyber; but if the English enter and pass, the Khyber once, no one shall be able to oppose them. Therefore the chiefs as well as the Shah, at Kabul, should not quarrel for the distribution of the money and ranks, but exert themselves to come down immediately to Jalalabad and reduce it before the English should pass Khyber; otherwise he (Akbar) is risking and ending his life for the faith of Muhammad, and will continue to exert himself as long as he lives."

ترجمه : "په دویم د اپریل موهن لعل د کابل نه خط ولیکلو چې یو خط د محمد اکبر خان نه موصول شوے دے چې امین الله خان راوړو او شاه ولوستو. دا خط زما د نظر نه هم تیر شو په مهربانۍ د ایراني سردارانو. د هغې مضمون دا وۀ چې محمد اکبر خان همیش خطونه لیکلي دي چې ماته فوځونه راواستوئ چې د جلال اباد په اخستو کښې ما سره امداد وکړي. ولې هیچا هم په هغې غوږ کښینښودو اوس ماته زما اعتباري سړو د پېښور نه خبر راکړے دے چې د فیرنګیانو پنځۀ پلټنې حسن ابدال ته راورسیدې او څۀ وخت چې دوئ د پېښور فوځونو سره یو ځاے شي نو هغوي او د سکهانو نجب فوځ به په زور په خیبر رانوځي. اګر چې ما هم سلطان جان یو څو سوه سړو سره د خیبر د خلقو د امداد دپاره استولے دے ولې کۀ چرې فیرنګیان یو ځل د خیبر نه راپورې وتل نو بیا هیڅوک هم د هغوي مقابله نشي کولے. له دې کبله نۀ خو سردارانو له او نۀ شاه له پکار دي چې په خپلو کښې د روپو په ویشلو او په عهدو جګړې وکړي. بلکې هغوي له انتهائي کوشش کول پکار دي چې هغوي سمدستي په جلال اباد باندې پیشقدمي وکړي. او وړومبے د دې نه چې د فیرنګیانو فوځونه د خیبر نه راپورې وځي هغه فتح کړي. کۀ نۀ وي نو زۀ په دین محمدي باندې ځان قربانولو ته تیار یم او تر کومه پورې چې زۀ ژوندے یم نو خپل انتهائي کوشش به کوم."

هر کله چې شاه شجاع ته دا معلومه شوه چې په جلال اباد باندې د نۀ وړاندې کیدو په سبب په ما باندې د خلقو شکونه ورځ په ورځ زیاتیږي نو هغۀ بالاخر جلال اباد ته د تلو

# پنځم باب

د جنرل پالک تازه دم فوځ د خیبر په لور روانیدل، او جلال اباد ته رسیدل، د بلې خوا د جنرل آکلینډ قندهار ته رسیدل، د جلال اباد په خواؤشا کلو د انګریزي فوځ ظلمونه او د جنرل پالک د کابل په طرف پیش قدمي، د شاه شجاع د زوي فتح جنګ د جنرل پالک کیمپ ته رارسیدل، د جنرل پالک کابل ته رسیدل، د بل طرف نه د جنرل ناټ فوځ د قندهار نه مکر ته رارسیدل، د یو انګریز افسر ډیمین د غازیانو سره مقابله او د هغهٔ شکست خوړل، د کلو په بې ګناه خلقو د انګریزي فوځ ظلمونه کول، د جنرل ناټ د محمود غزنوي د مقبرې نه دروازې ایستل او د ځان سره وړل او یوه غلطه دعوئ کول چې دا د سومنات دروازې دي.

جنرل پالک د پنځمې فروری نه تر دیرشم مارچ پورې په پیښور کښې د نور امدادي فوځ په انتظار کښې سره د بریګیډیر جنرل وائلډ د بریګیډ پروت وهٔ. په دیرشم مارچ نور ګوره فوځ پیښور ته را ورسیدو. او په یو دیرشم مارچ هغهٔ د یو عظیم الشان فوځ چې په هغې کښې توپ خانه، رساله، سپرمینا او د جنګ ټول ضروري اجزاء موجود وو، په درهٔ خیبر پیش قدمي وکړه. د درې بریګیډه انګریزي فوځ نه علاوه د سکهانو یو ډیر لوئ فوځ هم د سردار ګلاب سنګهـ د جمو د راجه د لاندې د هغوي د امداد دپاره په پیښور راجمع شوے وهٔ. د یو دیرشم مارچ نه تر څلورم اپریل پورې پالک په جمرود کښې د بارانونو اود نوروضروریاتو په وجه پاتې شو. په پنځم اپریل درې بجې د شپې دا ټول فوځ چپ چاپ په دره ورننوتو. افریدو تر خپله وسه پورې ښه مقابله وکړه. مګر د دومره زبردست او منظم فوځ طاقت ئې نهٔ لرلو او اخر د یوې مضبوطې جګړې نه پس وروستو شول. پالک په علي مسجد باندې قبضه وکړه. پالک پخپله د شادي بګیار په لار او د سکهانو فوځ د جبګئ په لار په خیبر ورننوتي وو. جنرل پالک د یوې ورځې د قیام نه پس په جلال آباد پیش قدمي وکړه. او د جنرل سیل فوځونو سره یو ځاے شو. د جنرل پالک د رسیدو نه پس لارډ ایلنبرو نوے ګورنرجنرل چې په اتهٔ ویشتمه فروری 1842ء کلکتې ته رارسیدلې وهٔ د موجوده پولیټیکل ایجنټانو یعني د کپتان میکریګر او د میجر رالنسن نه پولیټیکل اختیارات واخستل او د کابل او د جلال اباد د طرف پولیټیکل اختیارات ئې جنرل پالک او د قندهار د طرف اختیارات ئې جنرل ناټ ته حواله کړل. د دې وجه دا وه چې په افغانستان کښې ټولو انګریزي فوځي افسرانو په یو اواز او په یو اتفاق د دې ټولو پولیټیکل افسرانو برخلاف خپله راځ حکومت هند ته ښکاره کړې وه. د افغانستان د انګریزي فوځ د لویو او د وړو افسرانو دا راځ وه چې د افغانستان بغاوت صرف د دې پولیټیکل ایجنټانو د غرور، تکبر، خلقو سره د ناجائز سلوک او ظلم او د اصلي واقعاتو نه بې خبرۍ په سبب شوے دے. سر جان کے د خپل تاریخ په دریم

# پنځم باب

د جنرل پالک تازه دم فوځ د خیبر په لور روانیدل، او جلال اباد ته رسیدل، د بلې خوا د جنرل آکلینډ قندهار ته رسیدل، د جلال اباد په خواؤشا کلو د انګریزي فوځ ظلمونه او د جنرل پالک د کابل په طرف پیش قدمي، د شاه شجاع د زوي فتح جنګ د جنرل پالک کیمپ ته رارسیدل، د جنرل پالک کابل ته رسیدل، د بل طرف نه د جنرل ناټ فوځ د قندهار نه مکر ته رارسیدل، د یو انګریز افسر ډیمین د غازیانو سره مقابله او د هغهٔ شکست خوړل، د کلو په بې ګناه خلقو د انګریزي فوځ ظلمونه کول، د جنرل ناټ د محمود غزنوي د مقبرې نه دروازې ایستل او د ځان سره وړل او یوه غلطه دعویٰ کول چې دا د سومنات دروازې دي.

جنرل پالک د پنځمې فروری نه تر دیرشم مارچ پورې په پیښور کښې د نور امدادي فوځ په انتظار کښې سره د بریګیډیر جنرل وائلډ د بریګیډ پروت وهٔ. په دیرشم مارچ نور ګوره فوځ پیښور ته را ورسیدو. او په یو دیرشم مارچ هغهٔ د یو عظیم الشان فوځ چې په هغې کښې توپ خانه، رساله، سپرمینا او د جنګ ټول ضروري اجزاء موجود وو، په درهٔ خیبر پیش قدمي وکړه. د درې بریګیډه انګریزي فوځ نه علاوه د سکهانو یو ډیر لوئې فوځ هم د سردار ګلاب سنګهـ د جمو د راجه د لاندې د هغوي د امداد دپاره په پیښور راجمع شوے وهٔ. د یو دیرشم مارچ نه تر ځلورم اپریل پورې پالک په جمرود کښې د بارانونو اود نوروضروریاتو په وجه پاتې شو. په پنځم اپریل درې بجې د شپې دا ټول فوځ چپ چاپ په دره ورننوتو. افریدو تر خپله وسه پورې ښه مقابله وکړه. مګر د دومره زبردست او منظم فوځ طاقت ئې نهٔ لرلو او اخر د یوې مضبوطې جګړې نه پس وروستو شول. پالک په علي مسجد باندې قبضه وکړه. پالک پخپله د شادي بګیاړ په لار او د سکهانو فوځ د جبګئ په لار په خیبر ورننوتي وو. جنرل پالک د یوې ورځې د قیام نه پس په جلال آباد پیش قدمي وکړه. او د جنرل سیل فوځونو سره یو ځاے شو. د جنرل پالک د رسیدو نه پس لارډ ایلنبرو نوے ګورنرجنرل چې په اتهٔ ویشتمه فروری 1842ء کلکتې ته رارسیدلې وهٔ د موجوده پولیټیکل ایجنټانو یعني د کپتان میکریګر او د میجر رالنسن نه پولیټیکل اختیارات واخستل او د کابل او د جلال اباد د طرف پولیټیکل اختیارات ئې جنرل پالک او د قندهار د طرف اختیارات ئې جنرل ناټ ته حواله کړل. د دې وجه دا وه چې په افغانستان کښې ټولو انګریزي فوځي افسرانو په یو اواز او په یو اتفاق د دې ټولو پولیټیکل افسرانو برخلاف خپله رائې حکومت هند ته ښکاره کړې وه. د افغانستان د انګریزي فوځ د لویو او د وړو افسرانو دا رائې وه چې د افغانستان بغاوت صرف د دې پولیټیکل ایجنټانو د غرور، تکبر، خلقو سره د ناجائز سلوک او ظلم او د اصلي واقعاتو نه بې خبرۍ په سبب شوے دے. سر حان کے د خپل تاریخ په دریم

جلد صفحه 99 کښې د هغې زمانې د عام انګريزانو کوم خيال چې د دې پوليټيکل افسرانو متعلق وۀ هغه ډېر په ښکلو الفاظو کښې بيان کړے دے.

" It would be difficult to embody, in a page of mere description, the popular notion of an Afghan "Political". He was believed to be a very concerted, a very arrogent, a very ignorant, and a very unfeeling personage; a pretender, who, on the strength of a little smattering of Persian and some ineterest, perhapes petty- coat interest, and high places, had obtained an appointment, the duties of which he was not capable of performing, and the trust involved in which he was wellnigh certain to abuse. He was looked upon as a creature whose blunders were as mischievous as his pretensions were ridiculous; one who ideas of diplomacy were limited to be cultivation of a moustache and the faculty of sitting cross-legged on the ground, who talked largely about Durbar, rode out with a number of sowars at his heels; and was always on the point of capturing some fugitive chief, and never achieving it after all. But this was only the more favourable aspect of the picture. There was another and a darker side. He was some times represented as a roaring lion, going about seeking whom he should devour; unveiling Afghan ladies, and pulling Afghan gentlemen by the beard, inviting chiefs to a conference and then betraying them; blowing sardars from guns; conniving at whole sale massacre, bribing brothers to betray brothers, fathers their sons; keeping fierce dogs to hound them at innocent country men; descecrating mosques, insulting mullahs, trampling on the Quran. In a word, commiting every conceivable outrage that crulity and lust could devise. There was no amount of basene indeed, of which these men were not supposed to be capable; no licentiousness to which they were not addicted; no crimes which they did no commit. This was the popular notion of an Afghan "Political".

ترجمه: د افغانستان د يو پوليټيکل افسر متعلق چې کوم عام تصور وۀ د هغې پوره تفصيل په يوه معمولي صفحه کښې راتلل خو مشکل دي ولې د هغۀ متعلق د خلقو دا رائ وه چې هغه يو لوے مغرور يو لوے متکبر او يو ډېر جاهل او يو ډېر بې حسه انسان وۀ. هغه د هر څيز مدعي وۀ. او د فارسۍ ژبې د ډېر سرسري علميت په زور او په لويو لويو ځايونو کښې د اثر بالخصوص د زنانوؤ د رسوخ په زور په دې عهده مامور شوے دے هغه د دې عهدې د فرائضو ادا کولو بالکل ناقابل وۀ. او د هغې اختياراتو به ئ ضرور ناجائز استعمال کولو. خلقو به هغه يو داسې سړے ګڼلو چې د هغۀ غلطی به هم د فساد نه ډکې وے. او دعوې به ئ د ټوقو او تمسخر وے. د هغۀ سياستداني به تر دې پورې محدوده ګڼلې شوه چې هغه ښکلې بريت پريږدي، او په زمکه باندې ئ پرلت کښيناستل زده کړي دي. هغه به اکثر د دربارونو خبرې کولې. او په اس به سور روان وۀ او ډېرسوارۀ به ئ ځان پسې روان کړي وو. او تل به د چا مغرور خان په ګرفتارۍ پسې وۀ. مګر په اخر کښې به چرې د هغۀ په ګرفتارۍ کښې کاميابيدو نه. مګر دا تعريف خو د هغۀ د تصوير ښکلے طرف وۀ. د هغۀ د تصوير بل او تور رُخ

هم وۀ. کله کله به د هغۀ متعلق دا وئیلې شو چې هغه به لکه د شیر ببر غړمبیدو او چارچاپیره به ګرځیدو چې هر څوک بیاموم چې وۀ ئ خورم. د پښتنو بیبیانو نه به ئ بورقې کوزولې او پښتانۀ شرفا به ئ د ډیرو نه نیول. خانان او سرداران به ئ جرګو له راوبلل او بیا به ئ په اعتبار کښې ګرفتار کړل. سرداران به ئ په توپو کښې الوځول په قتل عام به ئ سترګې پټولې، ورور له به ئ د ورور په سر بډې ورکولې او پلار له به ئ د زوي په سر. چیچونکې سپي به ئ ساتل چې په ساده د کلو وسیدونکو پسې کول به ئ، د جوماتونو بې حرمتي به ئ کوله د ملیانو بې عزتي به ئ کوله، قرآن به ئ د پښو لاندې کولو. خلاصه دا چې هغۀ به هر هغه بد کار کولو چې د یو ظالم او بدکار سړي په دماغ کښې راتلې شي. حقیقت دا دے چې داسې یو ذلیل کار هم نۀ وۀ چې د خلقو په خیال کښې د دې پولیټیکل افسرانو د لاسه کیدے نشو. او نۀ داسې څۀ بدمعاشي وه چې په هغې هغوي عادت نۀ وو. او نۀ داسې څۀ جرم وۀ چې د هغې به هغوي مرتکب کیدل نه. دا د عامو خلقو تصور وۀ د افغانستان د یو پولیټیکل افسر متعلق.

سر جان کے په خپل کتاب کښې د دې برنې تصور نه سخت اختلاف رائ کړې ده او د خلقو دې خیال ته هغۀ د مبالغې نه ډک وائي. مګر دې کښې شک نشته چې د هغې زمانې په فوځي انګریزي افسرانو کښې د یو پولیټیکل افسر تصور هم دغه وۀ چې څۀ رنګ هغۀ بیان کړے دے. د جنرل ناټ هم د دې پولیټیکل افسرانو متعلق څۀ ډیر ښۀ خیال نۀ وۀ.

" If a man is too stupid or too lazy to drill his company, he often turns sycophant, cringer to the heads of departments, and is made a "Political" and of course puts the government to an enormous expense, and disgraces the character of his country."

ترجمه : کۀ یو سړے دومره بیوقوف یا دومره سست وي چې هغه خپلې کمپنۍ ته ډرل نشي ورکولې نو هغه د محکمو د افسرانو ذلیله خوشامنده راخلي نو هغه "پولیټیکل" شي او بیا هغه د خپل حکومت بیحده ډیر تاوان کوي او د خپل ملک نوم سپکوي.

د جنرل ناټ د دې رائ نه هم سر جان کے اختلاف کړے دے مګر جنرل ناټ پخپله قریباً څلور کاله په افغانستان کښې په یو لویې فوځي عهدې مقرر وۀ او د قندهار نه چې واخلې نو تر غزنې پورې او د هرات تر حدودو پورې د ټولې علاقې سیاسیاتو سره د هغۀ د کال 1838ء نه تر 1842ء پورې مسلسل تعلق وۀ. ولې سر جان کے د دریائے ستلج نه قبلې ته چرې نۀ وۀ راپورې وتې او نۀ هغۀ پخپلو سترګو د افغانستان واقعات او نۀ ئ پخپلو سترګو د افغانستان د پولیټیکل افسرانو کار روائي لیدلے وه.

هر کله چې جنرل پالک جلال اباد ته او جنرل آکلینډ قندهار ته راورسیدل نو اوس د حکومت هند په مخکښې دا سوال پیدا شو چې آیا دا فوځونه دې په کابل پیشقدمي وکړي او کۀ واپس راستون شي. جنرل ناټ او جنرل پالک پخپله ذاتي طور باندې د خپل نوم او د

خپل حکومت د ورک شوي رعب کښېنولو دپاره د دې خواهشمند وو. چې مونږ دې په کابل د دواړو طرفو نه ور ورېاندې شو او انگريزي دبدبه دې يو ځل بيا د پښتنو په قام کښېنوؤ. مگر په دې کښې هغوي بغير د حکومت هند د حکم نه څۀ نشو کولې پس هغوي د ښکته نه د گورنر جنرل د احکامو په انتظار کښې کښېناستل. لارډ آکلينډ چې څۀ وخت په درۀ خيبر کښې د جنرل وائلډ د شکست نه خبر شو نو د هغۀ دا اراده وشوه چې جنرل پالک دې په څۀ شان د جنرل سيل نه بريگيډ د جلال اباد نه په حفاظت راوباسي. او بيا دې د افغانستان واقعاتو ته وگوري او د انگريزي قيديانو د راخلاصولو نه پس دې هندوستان ته واپس شي. هر کله چې لارډ ايلنبرو راورسيدو نو هغۀ د افغانستان د دوباره فتح کولو خيال خو پريښودو په دې وجه د شاه شجاع خپل نيت انگريزانو ته د اشتباه نه خالي نۀ دے. مگر هغۀ دا اراده ښکاره کړه چې کوم نوم او کوم رعب چې د فيرنگيانو د افغانستان په ملک کښې تباه شوے دے هغه ضرور په څۀ نا څۀ طريقه بيا قائمول پکار دي. او د پښتنو په قوم يو داسې ضرب لگول مناسب دي چې زمونږ هندوستاني رعايا او زمونږ دوستانو ته دا معلومه شي چې مونږ هغې خلقو له سزا ورکولې شو چې څوک مونږ ته تکليف او نقصان رسوي. او بيا پس د دې نه مونږ له افغانستان نه راوتل پکار دي. مگر څۀ وخت چې هغه د هيکل زے په مقام: جنرل آکلينډ د شکست خبر واؤريدو نو د هغۀ په اراده کښې تبديلي پيدا شوه او سمدستي ئې جنرل ناټ ته وليکل چې قلات غلزے او قندهار سمدستي خالي کړه. او کوئټې ته راواپس شه. او څۀ وخت چې موسم موافق شي نو بيا ځان سکهر ته ورسوه. دغه قسم يو بل خط هغۀ د اپريل په مياشت کښې د کمانډر انچيف په ذريعه جنرل پالک ته هم وليږلو مگر د دې احکامو د ليږلو لا ډيره موده نۀ وه شوې چې لارډ ايلنبرو ته معلومه شوه چې د کابل په علاقه کښې د سرداران کابل په منځکښې ډيرې سختې خانه جنگي شروع شوي دي. او پښتانۀ په ډير غير منظم او منتشر حالت کښې د يو بل خلاف جنگونه کوي. د جنرل آکلينډ د شکست نه پس د هغۀ دا خيال پيدا شوے وۀ چې کۀ چرې انگريزي فوځونه د بدل اخستو دپاره په کابل او په غزني ور وړاندې شول نو د انگريزانو په پيشقدمي به ټول پښتانۀ په اتفاق زمونږ مقابلې ته ودريږي او چونکې په ميدان جنگ کښې انگريزي فوځونو ډير ځله د پښتنو نه شکستونه خوړلي دي نو ډيره ممکنه ده چې انگريزي فوځ بيا شکست وخوري. مگر څۀ وخت چې د سردارانو د باهمي جنگونو خبرونه گورنر جنرل ته ورسيدل نو په اتويشتم اپريل د گورنر جنرل چيف سيکرټري جنرل پالک ته بل يو خط په کابل باندې د ختو دپاره او د پښتنو نه د بدل اخستو دپاره وليکلو. په کومو وجوهاتو چې لارډ ايلنبرو په اراده کښې تبديلي راغله هغه د هغۀ د دې خط نه معلوميږي:

" The aspect of affairs in upper Afghanistan appears to be such according to the last advice received by the Governor General, that his Lord ship cannot but

comtemplate the possibility of your having been led, by the absence of serious opposition on the part of any army in the field, by the division amongst the Afghan chiefs, and by the natural desires you must, in common with every true soldier, love of displaying again the British flag in triumph upon the scene of our late disasters, to advance upon and occupy the city of Kabul if that event should have occurred, you will understand that it will in no respect vary the view which the Governor General previously took of the policy now to be pursued, the Governor General will adhere to the opinion that the only safe course is that of withdrawing the army under your command, at the earliest practicable period, into position within the Khyber Pass. Where it may possess easy and certain communication with India.

ترجمه : ”کوم اخري خبرونه چې ګورنر جنرل ته رارسيدلي دي د هغې نه دا معلوميږي چې په بر افغانستان کښې صورت حال داسې دے چې د لاټ صاحب په خيال کښې به ئ تهٔ ضرور دې ته اماده کړے ئ چې تهٔ د کابل په ښار باندې پيشقدمي وکړې او په هغې قبضه وکړې ځکه چې يو نهٔ په ميدان کښې فوځ شته چې ستاسو ښه مقابله وکړي بل دا چې په سردارانو کښې باهمي بې اتفاقي ده او دريم دا چې قدرتي طور به ستاسو او د هر رښتوني سپاهي سړي دا خواهش وي چې مونږ انګريزي جنډه يو ځل بيا په هغه مقام په سرخرويي ودرولې چې کوم ځاے کښې مونږ ته دا مصيبتونه راپيښ شوي دي . هرکله چې دا کار وشي نو تاته دي دا معلومه وي چې اوس به د دې په سبب د ګورنر جنرل په زړه پاليسي کښې څهٔ فرق نهٔ پريوځي. د ګورنر جنرل رائ بدستور هم دغه دهٔ چې محفوظه طريقه دا ده چې تهٔ خپل فوځونه د موسم په ابتدا کښې په درهٔ خيبر کښې دا شان مقاماتو ته واپس کړې چې د هغې ځايونو نه هندوستان سره په اسانتيا او يقيني طور سره آمدورفت کيدے شي.“

د دې خط نه صفا معلوميږي چې په حکومت هند کښې په کابل باندې د پيشقدمۍ کولو جرأت بالکل نهٔ وهٔ کهٔ چرې دا وخت د افغانستان پښتنو په اتفاق د انګريزي فوځ برخلاف ملا تړلے وے. ولې چونکې د انګريزانو په مخکښې ميدان بالکل صاف وهٔ او د هغوي د مقابلې دپاره نهٔ خو څهٔ قومي فوځ موجود وهٔ او نهٔ په قبائلو کښې تنظيم او اتفاق پاتې شوے وهٔ. صرف په دې وجه لارډ ايلنبرو ته بيا د دې خبرې جرأت پيدا شو چې انګريزي فوځ دې د جلال اباد نه مخکښې په کابل پيشقدمي وکړي. هم په دې طريقه لارډ ايلنبرو جنرل ناټ ته هم اختيار ورکړو چې آيا هغه هندوستان ته واپس د کوئټې او د سکهر په لاره راځي. او کهٔ د غزني په لاره کابل ته او د کابل نه بيا جلال اباد او د پيښور په لاره راځي. د دې اختيار ورکولو نه د لارډ ايلنبرو مدعا دا وه چې د جنرل ناټ خپله رضا ده چې هغه بې ډزه ډوزه هندوستان ته واپس راتلل غواړي او کهٔ د غزني او کابل په لاره د پښتنو د علاقې د لتاړولو نه پس د جلال اباد په لاره واپس کيدل غواړي. لارډ ايلنبرو نهٔ خو په صفا الفاظو کښې جنرل پالک ته او نهٔ جنرل ناټ ته ارومرو په کابل باندې د پيشقدمۍ حکم ورکړے

وۀ. بلکې دا خبره ئ د هغوي په منشا باندې پرېښې وه. او په دې کښې د هغۀ د زړۀ مدعا دا وه چې کۀ د کابل په پيشقدمۍ کښې دې دواړو جرنيلانو ته څۀ نقصان ورسيدو نو زۀ به د ذمه دارۍ نه خلاص يم ولې چرې کۀ هغوي څۀ قابل قدر کاميابي حاصله کړه نو د دې ټولې کار روايۍ په شاباشي کښې به زۀ هم حصه واخلم.

لوستونکو ته معلومه ده چې محمد اکبر خان يوائې پخپل سر ډېر کوششونه د جلال اباد د انګريزي فوځ د تباه کولو دپاره وکړل خو ناکام پاتې شو. د دې خبرې هم ذکر شوے دے چې هغۀ د هغې انګريزي قيديانو په ذريعه چې کوم د هغۀ په لاس کښې په طور د يرغمالانو وو ډېر کوشش د دې خبرې وکړو چې انګريزي فوځ دې په کابل باندې پيشقدمي ونکړي مګر هغه په دې کښې هم ناکامياب شو او مجبوراً دې قيديانو سره هغه کابل ته راستون شو او ډېره موده ئ په کابل کښې د سردارانو تر منځ د اتفاق پيدا کولو کوشش وکړو.

هر کله چې جنرل پالک ته معلومه شوه چې اکبر خان کابل ته لاړو او د جلال اباد ټوله علاقه خوشے پاتې شوه نو هغۀ اوس په دې علاقه کښې د ټولو نه وړومبے د انګريزي فوځ د طاقت ښودلو کارروائي شروع کړه. هغۀ بريګيډير جنرل مانټيت په اوولسم جون سره د يو بريګيډ فوځه چې په هغې کښې ګوره او هندوستاني سپاهيان دواړه شامل وو او يوه لويه توپخانه هم ورسره وه د شنوارو علاقې ته واستولو. دا فوځ لکه د خونخوار ځناورو وړومبے د علي بغان په کلي ورغلل. او سمدستي ئ ټولو کورونو ته اور ورته کړو او لکه د ډاکوانو ئ عام خلق لوټ کړل. مګر د مانټيت او د ميکريګر په وينا د لوټ شوي مال ډېره حصه بيا د کلي خلقو ته واپس کړې شوه. هر کله چې نور خلق د علي بغان د لوټ او د سوځېدلو نه خبر شول نو د دريو کلو خلقو خپل مال اسباب او زنانه غرونو ته بوتلې او کلي ئ خوشي کړل. بيا په شلم جون مانټيت خپل فوځونه ګولې کلي ته بوتلل. دا کلے ډېر زرخيز او ښکلے کلے دے. په دې کلي کښې لويې لويې قلاګانې او ډېر ښائسته کورونه اباد وو. د اوړي ټول فصل په درمندونو کښې تيار پروت وۀ. د کلي خلقو د دې فوځ په راتلو صرف خپل بال بچ غرونو ته ورسولو او غلې ئ په ځاے پرېښودلې. دې فوځ په ټوله غله قبضه وکړه. او د هغوي قلاګانې او کورونه ئ وران کړل او د هغوي د جنګو ښکلې ښکلې ونې ئ ورله تباه کړې د دې کلي برخلاف د انګريزانو دا الزام وۀ چې دوئ زمونږ فوځونه لوټ کړي دي او څۀ خزانه ئ هم د هغوي نه تښتولې ده. د دې نه پس دې فوځ د يو بل کلي نه لس زره روپۍ د خزانې د لوټلو په الزام کښې وصول کړې. او نور ډېر مال ئ هم ترينه قبضه کړو. د دې نه پس مانټيت خپل فوځونه نور مخکښې دننه درې ته ور وړاندې کړل. او کوم ځاے ته به چې ورتلو د هغه ځاے د خلقو قلاګانې به ئ ورانولې او اور به ئ ورته کولو. او کوم ځاے کښې

چې بـه چـا لږ هم د مقابلې نوم اخستو نو هغوي به سمدستي ټول چاندماري کول. د مزینه په کـلـي کښې بـالخصوص شنوارو څهٔ معمولي شان مقابله کړې وه. نو د هغوي ټول کلے ئ په تـوپـو والـوځـولو او بیشانه ډیر خلق ئ تباه کړل. دا بریګیډ د خپل کار د خلاصولو نه پس په دریم اګست جلال اباد ته واپس راغلو.

پـه شلـم اګسـت جنـرل پالک سره د خپلو فوځونو د جلال اباد نه د کابل په طرف پیشـقـدمي شروع کړه. او په درویشتم اګست ګندمک ته ورسیدو. د ګندمک نه دوه میله لـرې د مـامـو خیـلـو کـلـے پروت دے. پالک د فوځ یوه مضبوطه دسته د هغې کلي خانانو او خـلـقو ته د سزا ورکولو دپاره مقرره کړه. د مامو خیل خانان او خلق د کلي نه وتښتیدل. او د چـارچـاپیره غونډو نه ئ انګریزي فوځ سره سخته مقابله وکړه مګر هغوي په شمار کښې ډیر لږ وو نو انګریزي فوځ هغوي پسې غرونو ته وروختو او هغوي کابل طرف ته تیښته وکړه. بیا انـګـریـزي فوځ د مامو خیل او کچلو خیل کلو ته اور ورته کړو او د هغوي میوه دارې ونې ئ پـرې کـړې. پـالک تـر اووم ستـمبر په ګندمک کښې پاتې شو. په اول ستمبر فتح جنګ د شـاه شـجـاع زوے پـه شلیدلو جامو کښې د جنرل پالک کیمپ ته راورسیدو. جنرل پالک هـغـه پـه ډیـر احتـرام او عـزت خپلې خیمې ته بوتلو او د هغهٔ په اعزاز کښې ئ د توپو سلامي وکـړه. پـه اووم ستـمـبـر جنرل پالک او جنرل سیل دواړه د خپلو فوځونو سره د ګندمک نه وروړانـدې شـو. او په اتم ستمبر جنرل میکسیکل هغوي پسې روان شو او د سکهانو څهٔ فوځ هـم هـغـوي سـره په ملګرتیا کښې لاړو. جنرل پالک څهٔ فوځونه په نیمله او څهٔ په ګندمک کښې هـم پـریښـودل. پـه اتـم ستمبر پالک د جګدلک په دره ورننوتو بیشانه ډیر غلجي د وړومبـے نـه په غرونو باندې هغهٔ سره د جګړې دپاره تیار ناست وو. په دغه ورځ یو زبردست او خـونـریز جنګ وشو مګر انګریزي فوځ په تعداد کښې بیشانه ډیر وهٔ هغوي په دواړه طرفه د دې غـرونـو سـرونـو تـه وختـل او ټـوله دره ئ د غلجو نه صفا کړه او په دره باندې ئ قبضه وکـړه. پـه یـوولسم تـاریخ دوئ ټـول تـزین ته ورسیدل په دغه مقام باندې د اکبر خان نیت جګـړې کـولو ته وهٔ ولې هغهٔ په ډیر تکلیف سره د پښتنو خوره وره ډله رایوځایے کړه او تزین تـه د جنـرل پـالک د رارسیـدو نه یوه ورځ پس راورسیدو. په دیارلسم تاریخ د دواړو ډلو په مـنـځـکښې یوه زبردسته جګړه وشوه مګر لکه څرنګ چې وړومبے ذکر شوے دے اکبر خان ښـهٔ د نـرتوب د جنګ نه پس شکست وخوړو او هغه د غوربند درې ته وتښتیدو او ځان سره ئ کپتـان بـائي ګریو هم بوتلو. جنرل پالک د دې نه پس بې ډزه ډوزه د کابل د ګهوړ دوړ په میدان کښې خپل کیمپ ولګولو.

لکه څرنګ چې وړومبے ذکر شوے دے د جنرل ناټ فوځونه په نهم اګست 1842ء د غـزنـي او د کـابـل پـه طـرف را روان شـول. د دې غـرض دپاره چې په کابل کښې د جنرل

پالک فوځونو سره یو ځاے شي او د افغانستان په ملک کښې انګریزي ورک شوے رعب قائم کړي. د جنرل ناټ فوځ د قندهار نه تر مکر پورې بې مقابلې راورسیدو مګر د قندهار نه اتۀ شلې میله لرې دے. انګریزي فوځ لا مکر ته نۀ وۀ رارسیدلې چې شمس الدین خان د غزني نه بهر د انګریزي فوځ د آمد نه خبر شو. دا وخت د مکر په علاقه کښې د مالیې په ټولولو کښې مصروف وۀ. هغۀ سمدستي د غزني او د مکر په چارچاپیره علاقو کښې قاصدان ولیږل چې د اولس د خلقو لښکرې را یو ځاے کړي. او د مکر په مقام د فیرنګیانو مقابلې ته ودریږي. مګر د شمس الدین خان لښکرې لا نۀ وے رارسیدلې چې انګریزي فوځ مکر ته راورسیدو. شمس الدین خان اوس د اوبه په مقام د جګړې نیت وکړو او غلزیان او نور قبائل ئې راجمع کړل. انګریزي فوځ په اتویشتم اګست د مکر نه رااروان شو او یو پړاؤ لا رئ ووهله او کیمپ ئې ولګولو. د دې نه پس د انګریزي فوځ اوښان بهر ته د څریدو دپاره راووتل او د هغوي ساربانان او نور ملازمان چارچاپیره غرونو ته د وښو راوړلو دپاره لاړل. په دې کښې ډیلمین یو انګریزي فوځي افسر ته چا اطلاع ورکړه چې کوم سړي د وښو راوړلو دپاره بهر غرونو ته تلي وو هغه ټول غازیانو په تورو کړل. ډیلمین بغیر د دې خبرې د تصدیق کولو نه او بغیر د احکامو د حاصلولو نه فوراً خپلې رسالې ته د تیارۍ حکم وکړو او د فرضي او خیالي دشمن په تعاقب کښې ووتو. دا خبر د سره دروغژن وۀ. او هغۀ ته هم ډیره زر معلومه شوه خو چونکې هغه یو ځل د کیمپ نه سره د فوځه راوتې وۀ هغۀ د خپل زور او رعب اچولو دپاره درې میله د انګریزي فوځ نه لرې هسې فوځي نمائش وکړو په دغه ځاے کښې هغۀ څۀ لږ سړي پیاده سره د وسلې ولیدل او بې تپوسه ئې په هغوي حمله وکړه او شل تنه ئې ترینه بې ګناه مړۀ کړل باقي کسان وتښتیدل ولې ډیلمین د هغوي تعاقب وکړو او تر غرونو پورې ئې ورسول د دې غونډۍ په خوا کښې هم هغۀ هغوي په قلاره پرې نۀ ښودل او په یوه دره کښې په هغوي پسې ورننوتو اتفاقاً په دې غونډۍ باندې ډیر غازیان ناست وو هغوي سمدستي د هغۀ په دستې باندې یو باړ وچلولو. ډیلمین لا تراوسه پورې د غازیانو باقاعده ټولي سره مخامخ شوے نۀ وۀ او هسې د اولس د خلقو نه هغۀ په خپل خیال کښې غازیان جوړ کړي وو او د هغوي په قتل پسې ډیر په بهادرۍ لګیدلے وۀ. څۀ وخت چې دا باړ په هغۀ د غازیانو د طرف نه وشو نو د هغۀ نه وار پار خطا شو او زر راواپس شو. په دې کښې د غازیانو قریباً یو نیم سل سوارۀ هغۀ له مخې له ورغلل ډیلمین په دې سړو هم حمله وکړه مګر د غازیانو یو بل لوے ټولي ناساپه د هغۀ بنې او ګس اړخ ته راښکاره شو او د دریو طرفو نه ئې ډیلمین داسې ګیر کړو چې د تیښتې لا رئ ترینه هیره کړه. بیا د غازیانو رساله د هغۀ د فوځ په دسته داسې په جوش راپریوته چې کپتان بیوري او لفټیننټ میکنزي یوې بلې غونډۍ ته وتښتیدل مګر غازیانو هغوي په تورو کړل. یو بل کپتان ئې د غرۀ په ویخ کښې قتل کړو. او د ډیلمین ټول

فوځ وارخطا وتښتېدو. د انګرېزي فوځ نه داسې اوسان خطا شول چې په تېښته کښې يو سور په بل سور ورختو او شا ته به ئې نۀ کتل. د انګرېزي فوځ نه دوه افسران قتل او درې زخميان شول. او شپږ پنځوس کسان نور قتل او بيکاره شول. ناټ چې د دې نه خبر شو نو سمدستي پخپله سره د ټوله فوځه د ډيلمين امداد ته ووتو هغۀ ته خبر شوے وۀ چې اووۀ زره غازيان راجمع شوي دي او د جنګ دپاره تيار دي. مګر څۀ وخت چې هغه سره د خپله فوځه موقعې ته ورسيدو نو هيڅوک ئې بيا نۀ موندل صرف يو څو تنه په چارچاپيره غرونو باندې ښکاره کيدل خو هغوي ډير لږ وو. باقي غازيان د جنګ نه پس يو خوا بل خوا تلي وو. اوس جنرل ناټ د دې واقعې د بې وسلې خلقو او د عام رعايا نه د بدل اخستو نيت وکړو. د ډيلمين سپاهيانو هسې په دروغه هغۀ ته ووئيل چې مونږ باندې د چارچاپيره کلو نه هم څۀ ډزې شوي دي. ناټ سمدستي هغه طرف ته رخ وکړو. د کلي خلق د انګرېزي فوځ د ظلم او د وحشت نه د اول نه خبر وو هغوي غريبان واښۀ په خلۀ او رسې په غاړه او قرآنونه په لاس راووتل چې مونږ ته هيڅ ګناه نشته. جنرل ناټ وړومبے خو د هغوي جان بخښي وکړه مګر د خپل فوځ د ګوروؤ يوه کمپني ئې د هغوي د کورونو د تلاشي دپاره وليږله. دا معلومه نۀ وه چې تلاشي ئې د کوم څيز دپاره کوله. معلوميږي چې غرض په دې کښې تش د خلقو سپکول وو. هر کله چې دا سپاهيان په کورونو کښې ورننوتل نو ميجر رانسن پخپل بيان کښې وائي چې يو غازي په هغه ځاے کښې تش يو ډز وکړو په دې باندې جنرل ناټ حکم وکړو چې د ښځو او د بچو نه بغير دې نور ټول د کلي خلق قتل شي. چنانچه د کلي سل تنه بې تحاشا په ګولو چاند ماري شول. صرف د يو سړي په ګناه سل تنه بې ګناه او بې وسلې تباه شول.

په ديرشم اګست د جنرل ناټ فوځ او د شمس الدين خان په لښکرو کښې زبردسته جګړه وشوه. شمس الدين خان په ډيرې بهادرۍ په انګرېزي فوځ باندې حمله وکړه مګر د يو خونريز جنګ نه پس فيرنګيانو دا حمله په شا وتمبوله. بيا شمس الدين خان د غزني په طرف لاړو او جنرل ناټ هم په اول ستمبر د غزني په لاره روان شو او په پنځم ستمبر هغه مقام ته ورسيدو. په لاره باندې هم د شمس الدين خان سړو د ناټ په فوځ د چارچاپيره غونډو نه ډيرې ډزې وکړې او کافي سړي ئې ترينه نقصان کړل. بيا جنرل ناټ خپل کيمپ د غزني په خوا کښې ولګولو. مګر شمس الدين خان په هغۀ باندې د توپو ګوله باري وکړه او ناټ مجبوراً خپل کيمپ د هغه ځاے نه وچت کړو. او د دوچني کلي په خوا کښې ئې ولګولو او د غزني د محاصرې انتظام ئې وکړو. شمس الدين خان ته د وړومبے نه معلومه وه چې صرف د اولس د خلقو په بې ترتيبه لښکر زۀ د جنرل ناټ د باقاعده فوځ مقابله نشم کولے نو شپه په شپه هغۀ ټولو قبائلو ته خپلو خپلو علاقو ته د تلو اجازت ورکړو پخپله په اس سور شو او يو څو تنو سره ئې د کابل لار واخسته. ديخوا د جنرل ناټ انجنيران په غزني باندې د توپو د

گوله باري دپاره د مورچو په جوړولو کښې ټوله شپه مصروف وو. مګر سحر وختي هغوي ته معلومه شوه چې په غزني کښې هيڅ د ابادۍ آثار نشته او ټول خلق د ښار نه وتي دي. جنرل ناټ يوه پلټنه ښار ته وردننه کړه مګر د يو څو هندوانو نه او د يو څو سپاهيانو نه چې کوم د انګريزي فوځ نه پاتې شوي وو نور ټول خلق د غزني نه وتي وو. دې نه پس جنرل ناټ د غزني قلا او ټول ښار ته اور ورته کړو او ټول غزنے ئ وسيزلو. بيا انګريزي فوځ يو بل ډير د شرم کار وکړو. هغه دا وۀ چې جنرل د رومنې د کلي نه چې کوم ځاے کښې د سلطان محمود غزنوي قبر دے د هغۀ د قبر نه ئ دروازې راوويستې او ځان سره ئ يوړې. په هندوستان کښې د څنې هندوانو او انګريزانو دا خيال وۀ چې د سلطان محمود غزنوي د مقبرې دا دروازې د سومنات د درمسال دروازې دي. چې هغۀ په سومنات باندې د حملې کولو په وخت کښې ځان سره غزني ته راوړې وے. لارډ ايلنبرو د هندوستان په راجګانو باندې د خپل طاقت او رعب اچولو دپاره او د هغوي د همدردۍ د حاصلولو په غرض جنرل ناټ ته پخپل يو خط کښې ليکلي دي چې د محمود غزنوي د قبر نه د هغۀ ګرز چې کوم د هغۀ په قبر زوړند دے او د هغۀ د درمسال دروازې چې د سومنات دروازې دي ځان سره راوړه. د دې نه اصلي مدعا د لارډ ايلنبرو دا وه چې زۀ د هندوستان راجګانو ته دا وښيم چې انګريزان د افغانستان نه په طور د فاتحانو راوتي دي نه چې په زور او په جبر. په اتم ستمبر د سلطان محمود غزنوي د قبر نه دا دروازې د ګوره فوځ په لاس را ونړولې شوې. او ناټ خپل کيمپ ته راوړې. دا سوال چې آيا دا دروازې په حقيقت کښې د سومنات دروازې دي او کنه يو دلچسپ سوال دے. د ميجر رانسن چې د ناټ سره د ډيرې مودې نه په حيثيت د پوليټيکل افسر ملګرے وۀ، او د دې دروازو د ويستلو په وخت کښې ناټ سره موجود وۀ دا قطعي رائ ده چې دا د سومنات دروازې نۀ دي بلکې د محمود غزنوي د زيارت منجورانو صرف د شکرانو ټولولو دپاره دا يوه فرضي قصه مشهوره کړې ده. او په دې وجه عام طور افغانستان کښې هم دا خيال وۀ چې دا د سومنات دروازې دي. د ډيرو دليلونو د وړکولو نه پس ميجر رانسن پخپل تحرير کښې د دې متعلق دا شان ليکي :

"The Gates, therefore, are cannot those of Somanath; but it is of course the interest of the mullahs to keep up the delusion, and to affect for the spot of the odour both of Sandal and Sanctity."

ترجمه : " په دې وجوهاتو دا دروازې بالکل د سومنات نۀ دي مګر په دې کښې د مليانو فائده ده چې دا غلط خيال په خلقو کښې بدستور وي او د دې ځاے دپاره د صندل خوشبوي او تقدس په خلقو کښې مشهور کړي."

لارډ ايلنبرو د دې دروازو متعلق يوه ډيره د فخر او د لافو نه ډک اعلان د جنرل ناټ او پالک د فوځونو هندوستان ته د واپسی په موقع د هندوستان د راجګانو، شهزادګانو او د

عـام خـلـقـو پـه نوم شائع کړو مګر په هندوستان کښې داسې يوه فرقه نۀ وه چې هغوي د لارډ ايـلـنبـرو دې خـودستـايـی پـورې تـوقې، تمسخر او خندا نۀ ده کړې. د هندوستان خلقو دې واقـعـې تـه هيڅ اهميت ور نکړو او اوس دا دروازې د اګرې په قلا کښې پرتې دي. دا اعلان چونکې د دلچسپی نه خالي نۀ دے نو مونږ هغه لاندې درج کوؤ:

From the Governor General

to all the princes and chiefs and people of India

My brothers and my friends,

Our victorious army bears the gates of the temple of Somanat triumph from Afghanistan, and the despoiled tomb of Sultan Mahmood looks upon the ruins of Ghazni.

The Insult of eight hundred years is at last avenged. The gates of the temple of Somanat, so long the memorial of your humiliation, are become the product record of your national glory and proof of your superiority and arms over the nations beyond the Indus.

To you, princes and chief of Sirhind, of Rajwara, of Malwa, and of Gujrat, I shall commit this glorious trophy of successful war.

You will yourselves, with all honour, transmit the gates of Sandal wood through your respective territories to the restored temple of Somanat.

The chief of Sirhind shall be informed at what time our victorious army will first deliever the gates of the temple into their gardianship, at the foot of the bridge of Sutlij.

My brothers and my friends,

I have ever relied with confidence upon your attachement to the British Govt; you see how worthy it proves itself of your love, when, regarding your honour as its own, it exerts the power of its arms to restore to you the gates of the temple of Somanat, so long the memorial of your subjection to the Afghans.

For myself, indentified with you in interest and in feeling I regard with all your own enthusiasm the high achievements of the heroic army, reflecting alike immortal honour upon my native and upon my adopted country.

To preserve and to improve the happy union of our two countries necessary as it is to the welfare of both, is the constant object of my thoughts upon that union depends the security of every ally as well as every subject of the British Govt; from the miseries whereby in former time India was afflicted; through that alone has our army now waved its triumphant standards over the ruins of Ghazni, and planted them upon the Bala Hisar of Kabul.

May that good providence, which has hitherto to manifestly protested me, still extend to me its favour, that I may so use the power now entrusted to my hands, as to advance your prosperity and secure your happiness, by placing the union of our two countries upon foundation which may render it eternal.

Ellenborough

ترجمه :د ګورنر جنرل د طرف نه د ټولو شهزادګانو، سردارانو او د هندوستان د خلقو په نوم:

زما وروڼو او زما دوستانو، زمونږ فتح مند فوځ د سومنات د دهرم سال دروازې په سرخ رويی سره د افغانستان نه راروانې کړي دي. او د سلطان محمود غزنوي تالا شوې مقبره د غزني ورانو کنډرو ته د حسرت په نظر ګوري. اخر کار ستاسو د اتو سوؤ کالو د بې عزتي بدل واخستې شو. د سومنات د دهرم سال هغه دروازې چې دا دومره موده ستاسو د ذلت نښه وه ستاسو د قومي جاه و جلال قابل فخر يادګار شو. او د دريائے سندهـ نه په پورې غاړه قومونو باندې ستاسو د فوځي زور د غلبې يو ثبوت شو.

اے د سرهند، د راجواړې، د مالوې او د ګجرات شهزادګانو، سردارانو زۀ په دې کامياب جنګ دا عظيم الشان يادګار تاسو ته حواله کوم. دا د صندلو دروازې به تاسو پخپله په ډير عزت او احترام پخپله خپله علاقه کښې د سومنات دهرم سال ته واپس يوسئ. د سرهند سردارانو ته به باقاعده اطلاع ورکړې شي چې څۀ وخت به زمونږ فتح مند فوځونه دا دروازې د دريائے ستلج د پل په ويخ کښې هغوي ته حواله کړي. زما وروڼو او دوستانو، حکومت برطانيه سره چې کوم تعلق ستاسو پاتې شوے دے ما هميش په هغې باندې په ډير وثوق سره اعتماد لرلے دے. تاسو وليدل چې دي حکومت څرنګ خپل ځان ستاسو د دې محبت مستحق ثابت کړو. هر کله چې هغوي ستاسو عزت خپل عزت وګڼلو او د خپل فوځي طاقت په زور ئ سره ئ تاسو ته د سومنات د دهرم سال هغه دروازې واپس کړې چې دا دومره موده د دې خبرې يادګار وے چې تاسو د پښتنو غلامان يئ.

څومره چې زما د ځان تعلق دے نو زما مفاد او احساسات ستاسو مفادو او احساساتو سره يو دي. او زۀ د دې بهادر فوځ کارنامو ته هم دومره د تعريف په نظر ګورم څرنګ چې تاسو ورته ګورئ ځکه چې هغوي لافاني عزت هم زما خپل ملک ته او هم زما د استوګنې دېملک ته بخښلے دے.

چونکې زمونږ د دواړو ملکونو په منځکښې جوړخت ساتل د دواړو ملکونو د خوشحالي دپاره ضروري دے. د دې دپاره دا جوړخت برقرار ساتل او هغې له ترقي ورکول زما د زړۀ دائمي مدعا ده. هم په دې جوړخت باندې د هر اتحادي او د حکومت برطانيه د هر رعيت حفاظت د هغې ټولو مصيبتونو نه منحصر دے په کوم کښې چې هندوستان په زړه زمانه کښې مبتلا وۀ. هم د دې اتفاق نتيجه ده چې زمونږ فوځونو خپل فتح مند نشانونه د غزني په تباه شوو کنډرونو باندې وچورلول او د کابل په بالا حصار ئ ښخ کړل.

زما دا دعا ده چې هغه کريم خدائے چې چا تر دې وخته پورې زۀ ساتلے يم په ما دومره

نور فضل وکړي چې زۀ خپل اختیارات چې اوس ماته حواله شوي دي دا شان استعمال کړم چې ستاسو حالت له عروج او ترقي ور کړم. ستاسو خوشحالي زیاته کړم او د دې خپلو دواړو ملکونو اتفاق په داسې بنیادونو کیږدم چې دا اتفاق دائمي شي.

ایلنبرو-

سر جان کے په خپل مخصوص طرز تحریر کښې د دې اعلان بابت د خپل کتاب د دریم جلد په صفحه 387باندې دا شان لیکي :

" No document that ever emanated from the bureau of a statesman has been overwhelmed with so much redicule as this. It is still fresh in the recollection of men who dwelt in India at this time, how the authenticity of the proclamation was gravely doubted- how the many, at first, declared their conviction that is was a newspaper satire upon the Napoleonic style of address which Lord Ellenborough had recently adopted; and how at last, when it come to be known- thoroughly known and understood- that it was a genuine emanation from the "Political Department", with the right official stamp upon it, such a flood of ridicule and consure was let loose upon it as had never before descended upon an Indian State-paper. The folly of the thing was past all denial. It was a folly, too, of the most senseless kind, for it was calculated to please none and to offend many. It was addressed to "all the Princes and Chiefs and People of India". The Brothers and Friends thus grandiloquently apostrophised, were a mixed family of Mohammadans and Hindus. Upon the Mohammadans it was an open and inteligible outrage. To the Hindus, the pompous offer of the polluted gates of Somanat was little bettter than a covert in suit. The temple to which was to have been restored was in ruins, and the sacred ground trodden by Mohammadans. Looking at the effusion from the oriental side, it was altogether a failure and an aboruon. Among Europeans, wordly men scouted the proclamation as a folly, and religious denounced it as a crime."

ترجمه : هر څومره تحریرونه چې چرې د یو سیاستدان د محمکې نه راوتي دي په هغوي کښې په یو پورې هم دومره ټوقې او مسخرې نه دي شوي څومره چې په دې اعلان پورې شوي دي کوم خلق چې په دې ورځو کښې په هندوستان کښې وسیدل د هغوي په یاد کښې تراوسه پورې دا خبره تازه ده چې څرنګ ورومبے خلق د دې تحریر د اصلیت په متعلق شکمن وو. د ډیرو کسانو خو دا بالکل یقین وۀ چې دا د نپولین په هغې طرز تحریر پورې پچموزه ده چې کوم لارډ ایلنبرو د څۀ زمانې نه اختیار کړے وۀ. او هر کله چې په اخر کښې دا معلومه شوه او په ښۀ شان سره معلومه شوه او خلق پرې ښۀ پوهه شو چې دا د پولیټیکل محکمې اصلي تحریر دے او درست سرکاري مهر پرې لګیدلے دے نو په هغې پورې د خندا او د مذمت یو داسې طوفان رادوخار شو چې به یو هندوستاني سرکاري تحریر پورې نۀ وۀ شوے. اوس د دې تحریر د حماقت نه څوک منکریدې هم نۀ شو او بیا دا حماقت سخت د

بې عقلۍ حماقت وۀ. ځکه چې په هغې باندې څوک خوشحالیدې خو نشو او خفګان پرې د ډیرو خلقو وو. دا تحریر د ټولو شهزادګانو، سردارانو او د هندوستان د خلقو په نوم شائع شوے وۀ. او کومو وروڼو او دوستانو ته چې په داسې فصاحت او بلاغت خطاب شوے وۀ هغه د هندوانو او مسلمانانو یوه مشترکه برادري وه. د مسلمانانو دپاره خو دا اعلان ښکاره په ښکاره د بې عزتۍ وۀ د هندوانو دپاره هم د سومنات پلیتې شوې دروازې په دې لوے شان سره هغوي له ورکول د خفیه بې عزتۍ نه څۀ کمه نۀ وه. په کوم دهرم سال کښې چې د هغې دروازو لګول مقصود وو هغه وران پروت وۀ او د هغې په زمکه باندې مسلمانان په پښو ګرځیدلي وو کۀ چرې د مشرق د خلقو په سترګو دې اعلان ته وکتلې شي نو هم هغه یو بالکل بې سوده او فضول څیز وۀ. په یورپینو کښې دنیا دارو خلقو دې اعلان ته د حماقت یو څیز ووئیلو او مذهبي خلقو دا یوه لویه ګناه وګڼله.

د دې نه پس جنرل ناټ د کابل لار واخسته په ټوله لار هغۀ سره د علاقې خلقو ځاے په ځاے ښۀ جنګونه وکړل او اخر هغه په اوولسم ستمبر د کابل ښار نه پنځۀ میله دیخوا پړاؤ وکړو. د ډیره کیدو نه پس د ناټ فوځونو د خپلو افسرانو په چشم پوشۍ سره په چارچاپیره کلو کښې لوټ او د غارت ګرۍ کار روایي شروع کړې. او چونکې دا کلي اکثر د قزلباشو سردارانو وو او هغوي عام طور سره د دې انقلاب په دوران کښې فیرنګیانو سره په مرسته ولاړ وو. جنرل پالک په دې لوټ مار سخت خفه شو. په دې سلسله کښې د میجر رانسن د روزنامچې اندراج د نوولسم ستمبر نه تر دوه ویشتم ستمبر پورې د دلچسپۍ نه خالي نۀ دے :

"Sept. 19- Our sepoys and camp followers, taking their cue, I fancy, from these officers, are very unruly, and commit extensive depredations on the land and villages near our camp; and as the property then plundered chiefly belongs to the Qazal Bash chiefs General Pollock, who rebes mainly on these people for the consolidaion of the new Govt;, is subject to great embarrassment. I have a sort of misgriving that Kabul will, after all be destroyed. In the present state of feeling, any accidental quarrel would lead to a general rush upon the town, and the sepoys once there, massacre and conftagration would assuredly follow. General Pollock, by proclamations of encouragement has been endeavouring to persuade the Kabulies to return to their houses and reopen their shops, but after all that has happened, it is difficult to persuade the towns- people that do not aim at retribution, and the proceedings about our camp at Chardeh are anything but calculated to allay their suspicious; the city continues, therefore, more than half closed, and supplies are procurable with difficulties."

Sept. 20- Our men have been plundering today as usual, about the camp, nd in some scuffle which took place at Deh Afshar, four of the Qazalbash with Qasam Khan, a chief, were slain by the sepoys."

Sept. 21- The fort of Mohammad Mirza, one of our worst enemies, was given up to

plunder, and we did not even respect the property at Aliabad, which belongs to Ghulam Mohammad Khan, the lately appointed minister... The townspeople had returned in small numbers to the town and had opened their shops; but owing to the affair at Deh Afshar. I believed a panic seized the people, and every one fled, believing that orders had been issued for a general massacre."

Sept. 22- The depredations of the sepoys and followers from this quarter continue, notwithstanding all the efforts that are made to repress them. The Qazalbash cannot help believing that we encourage these excesses, and in consequence they are not half satisfied of General Pollock's sincerity."

ترجمه : نولسم ستمبر - زما خيال دے چې زمونږ سپاهيان او ملاتړ د خپلو افسرانو په اشاره ډير بې قابو شوي دي. او زمونږ د كيمپ په خوا كښې په زمكو او په كلو باندې ئ ډيره تباهي راوستې ده او كوم مال چې هغوي تالا كوي چونكې هغه د قزلباش سردارانو ملكيت دے او د نوي حكومت د استحكام دپاره د جنرل پالک اسره هم هغوي ته ده. له دې كبله هغۀ ته په دې ډيره سخته پريشاني ده. زما په زړۀ كښې هسې شک شان دے چې كابل به اخر تباه كړې شي. په موجوده صورت حال كښې كۀ اتفاقي هم څۀ جګړه وشوه نو زمونږ سپاهيان به ټول په ښار باندې ورپريوځي او چې يوځل هغوي په ښار كښې وردننه شي نو قتل عام او اور لګول به د هغې لازمي نتيجه وي. جنرل پالک د عام اعلان په ذريعه د دې خبرې كوشش كوي چې كابليان دې ښار ته واپس راتلو او دكانونو پرانستو ته مائل شي مګر دا څۀ چې وشو د دې نه پس دا مشكله ده چې د ښار خلقو ته په دې باور وركړې شي چې زمونږ د بدل اخستو نيت نۀ دے. او كوم واقعات چې زمونږ د چار ديهه د كيمپ په خوا كښې پيښ شوي دي د هغې په سبب خو به د هغوي د زړۀ شک نور هم زيات شوے وي. له دې كبله ښار د نيمې نه زيات هم هغه شان بند دے او د خوراک وغيره سامان په مشكله په لاس راځي.

شلم ستمبر - زمونږ سرې د كيمپ په خوا كښې نن هم حسب معمول په لوټ مار نښتي دي او په يوه جګړه كښې چې په ديهه افشار كښې وشوه د قزلباشو څلور تنه سرې سره د قاسم خان د هغوي د سردار زمونږ د سپاهيانو د لاسه قتل شو.

يويشتم ستمبر - د محمد مرزا قلا چې زمونږ يو سخت دشمن وۀ تالا كړې شوه. او مونږ د علي آباد په كلي هم صرفه ونۀ كړه چې د غلام محمد خان زمونږ د نوي مقرر شوي وزير كلے دے. د ښار خلق نن پرون څۀ لږ ډير ښار ته راغلي وو او دكانونه ئ پرانستي وو مګر چې د ديهه افشار واقعه پيښه شوه نو زما خيال دے چې په خلقو كښې ويره راغله او هر يو كس بيا وتښتيدو ځكه چې د هغوي دا يقين وشو چې د قتل عام حكم وشو.

دويشتم ستمبر - په دې ځاے كښې زمونږ د سپاهيانو او د ملاترو دلاسه تباهي بدستور روانه ده. سره د دې چې د هغې د دباوۈلو دپاره هر قسم كوششونه كيږي. قزلباش مجبور دي چې

په دې خبره باور وکړي چې زمونږ خواهش دے چې دا زیاتے دې وشي.

د دې روزنامچې د اندراج نه کم از کم شپږ خبرې ثابتیږي.

(۱) د جنرل پالک او د جنرل ناټ د فوځونو په رارسیدو سره د کابل د ښار د خلقو د ویرې نه ښار خالي کول او په ښار کښې او په خواؤ شا علاقه کښې صرف قزلباش پاتې شول.

(۲) جنرل پالک اعلانونه د دې خبرې خوارهٔ کړل چې د انګریزي فوځ نیت د بدل اخستو نهٔ دے او له دې کبله دې خلق بیا خپلو خپلو کورونو ته راشي او خپل خپل دکانونه دې لرې کړي.

(۳) باوجود د دې اعلانونو د کابل د خلقو په دې باور نهٔ کیدو چې دا اعلانونه درست دي ځکه چې د انګریزي فوځ سپاهیانو د خپل کیمپ په خوا کښې لوټ مار کولو او افسرانو به هغوي نهٔ منع کول. او یا ئ نهٔ شو منع کولے.

(۴) جنرل پالک په کابل کښې یو نوے حکومت قائم کړو او غلام محمد خان پوپلزے ئ د نوي بادشاه چې فتح جنګ د شاه شجاع زوے وهٔ او په اول ستمبر د جنرل پالک کیمپ ته د ګندمک په مقام د کابل نه راغلے وهٔ، وزیر مقرر کړو او دا نوې حکومت جنرل پالک د قزلباشو په زور مضبوطول غوښتل.

(۵) د انګریزي فوځ د لاسه هم قزلباشو او هم غلام محمد پوپلزي سخت نقصانات بیاموندل.

(۶) څهٔ خلق د جنرل پالک د اعلاناتو په سبب ښار ته واپس راغلي وو مګر چې ئ واؤریدل چې د انګریزي فوځ سپاهیانو څلور قزلباش سره د قاسم خان سردار قتل کړل نو ټول خلق بیا وتښتیدل.

سره د جنرل پالک د اعلاناتو چې د انګریزانو دا نیت نهٔ دے چې د کابل د خلقو نه بدل واخلي د تباهۍ او د بې ګناه خلقو د کورونو تالا کیدلو بابت چې څهٔ میجر رانسن لیکلي دي هغه مونږ لاندې درج کوؤ:

" On the 9th our Engineers set to work to blow up and destroy the Charchutta. The cry went forth that Kabul was given up to plunder. Both camps rushed into the city, and the consequence has been the almost total destruction of all parts of the town, except the Ghulam Khana quarter and the Bala Hisar.... Numbers of people ( about four thousand or five thousand) had returned to Kabul, rellying on our promises of protection... rendered confident by the comparative immunity they had enjoyed during the early part of our sojourn here, and by the appearance, ostentatiously put forth, of an Afghan Govt. They had many of them reopened their shops. These people have been now reduced to utter ruin. Their goods have been plundered, and their houses burnt over their hands. The Hindus in particular, whose numbers amount to some five hundred families, have lost everything they possess, and they will have to beg their way to India in rear of our

columns. The Chandawal has had a narrow escape. Safeguards nave been placed at the different gates; but I doubt not if our parties of plunderers would not have forced an entrance had not the Ghulam Khana stood to their arms, and showed and expressed a determination to defend their property to the last."

ترجمه : په نهم تاریخ باندې زمونږ انجنیرانو د چارچتې د الوځولو او د تباه کولو کار شروع کړو. په دې کښې یوه چغه شوه چې د کابل ښار تالا شو بیا د دواړو کمپنو یعنې د جنرل پالک او د جنرل ناټ سرې په یو دؤ ښار ته راغلل او نتیجه ئ دا وه چې سوا د غلام خانې د کندې او د بالا حصار نه نور ټول ښار قریباً قریباً تباه شو. ډیرو خلقو چې په شمار کښې تخمیناً څلور یا پنځهٔ زره وو زمونږ د حفاظت په وعدو اعتبار کړے وۀ او چونکې زمونږ د قیام په وړومبو ورځو کښې هغوي مقابلتاً په امن کښې وو او په مونږ په ظاهره یو حکومت هم خلقو ته ښکاره کړے وو په دې وجه د هغوي اعتبار نور هم زیات شوے وۀ. او کابل ته دننه واپس راغلي وو. په هغوي کښې ډیرو کسانو خپل دکانونه هم پرانستي وو. دا خلق اوس بالکل تباه شول. د هغوي مال اسباب تالا شو او کورونه ئ وسوزیدل. خاص طور سره هندوانو نه چې په شمار کښې تخمیناً پنځهٔ شپږ سوه کوره وو هر څهٔ لاړل. اوس به ئ هغوي د خیرات په غوښتو زمونږ د فوځونو شا شا ته هندوستان ته واپس ځي. چنداول(چې د قزلباشو د چم نوم وۀ) په څهٔ مشکله هیله بچ شو. اګر چې په بیلو بیلو دروازو څهٔ پهرې د هغې د حفاظت دپاره لګیدلې وے مګر زما یقین نهٔ دے چې زمونږ د لوټ مار ټولې به چا په دې منع کړې وي وو کهٔ چرې غلام خانې خپله وسله نهٔ وے راخستے او تر اخره پورې ئ د خپل مال د حفاظت پوره اراده نهٔ وے ښکاره کړې.

عجیبه خبره خو داده چې هر کله د دې زیاتو شکایتونه د جنرل ناټ برخلاف پالک ته وشول نو جنرل ناټ د خپلو سپاهیانو مکمله صفائي وکړه او وې لیکل چې دا ټول الزامات په هغوي بالکل دروغ دي. او دغه شان جنرل پالک سوا د چارسو د تباه کولو نه نور د ټولو زیاتو او د لوټمار د الزامونو نه انکار وکړو. او ګورنر جنرل ته ئ د خپل فوځ صفائي بیان کړه. د استالیف د تباهي او کومې زیاتۍ چې د هغه ځاے خلقو سره د انګریزي فوځ سپاهیانو وکړې د هغې ذکر وړومبے شوے دے.

په دې ټول لام باندې د هندوستان د غریب رعایا دوه ویشت نیم کروړه روپۍ خرڅ شوې او دا عظیم الشان مالي بوج د هندوستان د خلقو په خزانه پریوتو. د افغانستان دا وړومبے جنګ نهٔ خو د ایسټ انډیا کمپنۍ په حکم شوے وۀ او نهٔ هغوي د دې جنګ جاري کولو منظوري ورکړې وه. د دې جنګ ابتدا په حقیقت کښې د انګلستان د حکومت په حکم باندې شوې وه. مګر خرڅ ئ ټول د هندوستان د خزانې او د هندوستان د غریب قوم په ذمه کښینښودې شو. دې کښې شک نشته چې کمپنۍ څهٔ معمولي شان کوشش د دې خبرې

وکړو چې د دې لوړے رقم یوه حصه د انګلینډ په حصه باندې وغورځیږي ولي د ملکۀ وکټوریه وزیرانو د دې نه انکار وکړو او دغه شان د یو بل ملک د بې وقوفۍ په سزا کنبې د هندوستان د بې خلې او بې ژبې رعایا دوه ویشت نیم کروړه روپۍ په سینډ لاهو شوې. سر جان کے د خپل تاریخ په دریم جلد صفحه 398په دې معامله دا رنګ خپله رائۓ ښکاره کوي:

" It is upon record that this calamitous war cost the natives of India, whose stewards we are, some fifteen millions of money. All this enormous burden fell upon the revenues of India and the country for long years afterwards groaned under the weight. The bitter injustice of this need hardly be insisted upon. The Afghan war was neither initiated by the East India Company, nor at any stage approved of by that great body. The ministers of the crown were responsible for the invasion of Afghanistan, but the revenues of the East India Compnay inspite of a feeble effort to shift a burden on to the British Exchequer, were condemned to bear the expenses. It was adroitly designed, indeed from the beginning that the Company should bear the charges of the expedition."

ترجمه : دا خبره په تحریر کښې موجوده ده چې د دې خوفناک جنګ خرڅ تخمیناً یو کروړ او پنځوس لکه پونډه د هندوستان په باشنده ګانو باندې چې د چا مونږ منتظمان یو , راغلو. دا بیشانه لوړ بوج د هندوستان په مالیاتو پریوتو. او تر ډیرې مودې پورې هندوستان د دې درونـد بـوج لانـدې زبیـر ګي کول. د دې فعل په سخت عدم جواز باندې مونږ ته د ډیر زور ورکولو ضرورت نشته. د افغانستان دا لام نۀ خو ایسټ انډیا کمپنی شروع کړے وۀ او نۀ چرې هغوي د دې جنګ منظوري ورکړې وه. په افغانستان باندې د دې حملې ذمه واري صرف د ملکې په وزیرانو وه. اوباوجود د دې نه چې ایسټ انډیا کمپنی څۀ کمزورے شان کوشش وکړو چې د دې بوج څۀ حصه په انګریزي خزانه باندې وغورځیږي مګر دا ټول خرڅ د ایسټ انډیا کمپنی په مالیاتو باندې په زور واچولې شو. په حقیقت کښې د ابتدا نه د دې خبرې په چالاکۍ تجویز شوے وۀ چې د دې مهم خرڅ دې کمپنی برداشت کړي. او کومه ښیګړه چې د انګریزانو او د هندوستان حکومت ته د دې جنګ نه په لاس راغله د هغې ذکر په صفحه 399دا شان کوي:

" And what was gained by the war? What are the advantages to be summed up on the other side of the account the expedition across the Indus was undertaken with object of erecting in Afghanistan a barrier against encroachment from the west. The advance of the British Army was designed to check the aggression of Persia on the Afghan Frontier, and to baffle Russian intrigues, by the substitution of a friendly for an unfriendly power in the countries beyond the Indus. After an enormous waste of blood and treasure, we left every town and village of Afghanistan bristling with our enemies. Before the British Army crossed the Indus, the English name had been

honoured in Afghanistan. Some dim traditions of the splendour of Mr. Elphinstone's mission had been all that the Afghans associated with their thoughts of the English nation, but, in their place, we left galling memories of the progress of a desolating Army. The Afghans are an unforgiving race, and everywhere, from Qandahar to Kabul, and from Kabul to Pehsawar, were traces of onjuries we had inflicted upon the tribes. There was scarcely a family in the country which had not the blood of kindred to revenge upon the accursed Ferringhees. The door of reconciliation seemed to be closed against us; and if the hostility of the Afghans be an element of weakness, it seemed certain that we must have contrived to secure it."

ترجمه : "په دې جنګ کښې مونږ کومه ګټه وکړه؟ او د حساب په بل طرف کښې کومې کومې فائدې مونږ درج کولے شو؟ د دریائے سندھ نه پورې غاړه د دې مهم په شروع کولو کښې غرض دا وۀ چې مونږ د قبلې د طرف نه د پیشقدمو برخلاف په افغانستان کښې یو دیوال جوړ کړو. د انګریزي فوځ د مخکښې کیدو مدعا دا وه چې د افغانستان سرحد طرف ته د ایران پیشقدمي منع کړو او روسي سازشونو له په دې طریقه شکست ورکړو چې د دریائے سندھ نه په پورې غاړه ملکونو کښې د یو مخالف حکومت په ځاے یو خپل طرفدار حکومت قائم کړو. ولې د ډیرې وینې تویولو او د خزانې ضائع کولو نه پس مونږ د افغانستان په هر کلي او هر ښار کښې ځان له بیشماره دشمنان پیدا کړل. د انګریزي فوځ د دریائے سندھ نه د پورې وتو نه وړومبے د انګریزانو د نوم په افغانستان کښې ډیر قدر وۀ او پښتنو د فیرنګیانو د قوم بابت صرف دومره خبره په ذهن کښې خفیف شان ناسته وه چې په یوه زمانه کښې د مسټر ایلفنسټن سفارت په ډیر شان و شوکت د هغوي ملک ته راغلے وۀ. مګر د دې په ځاے مونږ اوس د هغوي په دماغ کښې د یو تباه کن فوځ د پیشقدمۍ تریخ یاد پریښودو. پښتون یو داسې قوم دے چې د چا قصور نۀ بخښي او مونږ په هر ځاے کښې د قندهار نه چې راواخلې نو تر کابل او د کابل نه چې راواخلې نو تر پیښور د هغې زخمونو نښې پریښي دي چې کوم مونږ قبائلو ته رسولي دي. په ټول ملک کښې به شاید داسې یو کور هم نۀ وۀ چې د چا د یو نه یو رشته دار د مرګ پور به په ملعون فیرنګیانو پورې نۀ وۀ. داسې معلومیږي چې د هغوي د دوستۍ دروازه په مونږ بالکل بنده شوه او کۀ چرې د پښتنو دشمني اخستل د کمزورۍ باعث کیدے شي نو یقیناً دا معلومیږي چې مونږ د قصده د هغې د حاصلولو کوشش کړے دے."

په دې سلسله کښې د ایسټ انډیا کمپنۍ د رپورټ یو څو فقرې د دلچسپۍ نه خالي نۀ دي :

" This war of robbery is waged by the English Govt; through the intervention of the Govt of India (without the knowledge of England, or of Parliament and the court of Directors); there by evading the checks placed by the constitution on the

**exercise of the prerogative of the crown in declaring war. It presents therefore, a new crime in the annals of nations- a secret war. It has been mad by a people without their knowledge, against another people who had committed no offence."**

ترجمه : "دا د ډاکه ماری جنګ انګریزي حکومت د حکومت هند په ذریعه (بغیر د انګلستان د خلقو د علم نه او بغیر د پارلیمنټ او د ډائریکټرانو د علم نه) جوړ کړے دے. او په دې طریقه د کومې پابندۍ چې آئین د بادشاه په اختیاراتو باندې د جنګ جوړولو متعلق ایښې دي هغه هغوي شاه ته وغورځولے ، په دې سبب دا د قومونو په تاریخ کښې یو نوے قسم جرم دے یعنې پټ جنګ. دا جنګ د یو قوم د طرف نه بغیر د هغوي د علم نه د بل قوم برخلاف جوړ شوے دے. حالانکې بل قوم د هیڅ جرم مرتکب شوے نۀ دے."

• کوم اثر چې د دې جنګ د هندوستان په خلقو او د هغوي په مالیاتو وشو د هغې تشریح په دې رپورټ کښې په دې الفاظو کښې درج ده :

**" The exhaustion of her flourishing treasury, complete stop to internal improvement; loss of the lives of fifteen thousand men (loss of camp followers not known), destructon of fifty thousand camels, abstraction of the circulating medium of the country, loss of at least 13,000,000 (now estimated from 17,000,000 to 20,000,000) permanent increase of the charges on the means of culture, of transport and of revenue, chilling the affections of the native army, and the disposition to enlist, loss of England's character for fair dealing, loss of her character of success; the Musalman population is rendered hostile; causes of rebellion developed by the pressure of taxes and the withdrawal of troops, and finally, the other political party in England is committed to the continuation of such deeds, after they are recognised by the people of these islands to be criminal, and after they had brought upon our heads disaster and retribution."**

ترجمه : د هغې (یعنې د هندوستان) د ابادۍ او ډکې خزانې تشیدل د اندورنې ترقۍ بندیدل، د پنځلس زرو بنیادمو قتلیدل، (د ملاتړو نوکرانو هیڅ اندازه نۀ ده معلومه) د پنځوس زره اوښانو تباه کیدل، په ملک کښې د روپو کمے، د یو کروړ او دیرش لکو پونډو ضائع کیدل، (چې اوس د هغې اندازه د یو کروړ اویا لکو پونډو نه تر دوؤ کروړو پورې رسیدلے ده) د هندوستان په ذمه باندې د پنځۀ شلویښتو لکو پونډونو نور مستقل رقم راتلل، د تجارت تباه کیدل، د تهذیب د خوریدلو ذرائع کمیدل، د باربردارۍ او د آمدنۍ ذرائع کمیدل، د هندوستاني فوځ په زړۀ کښې د محبت او د برتي کیدو خواهش کمیدل، د انګلستان په دیانتدارۍ د ګزران کولو شهرت خرابیدل، د انګلستان په هر ځاے کښې د کامیابۍ د حاصلولو نوم خرابیدل. د مسلمانانو قوم مونږ سره دشمنان کیدل، د ټیکسونو د بوج او د فوځونو بهر ته د لیږلو په سبب د بغاوت اسباب زیاتیدل او په اخر کښې دا چې د انګلستان بله پارټي مجبوریدل چې هغوي هغه ټول کارونه وساتي کوم چې د دې جزیرو خلقو ته (یعنې

د انګلستان خلقو ته) جرمونه ښکاري. او د کوم په سبب چې په مونږ باندې افتونه او سزا ګانې نازلې شوې.

## شپږم باب

د یار محمد خان د قتل نه پس د هغهٔ د زوي سید محمد خان د هرات بادشاه کیدل او د هغهٔ د لیونتوب په وجه په حکومت د شهزاده محمد یوسف خان قبضه کول او د هغې نه پس د هغهٔ د وزیر عیسیٰ خان په حکومت قبضه کول. او د ایران د بادشاه سره د عیسیٰ خان او کوندل خان ساز باز کول، د امیر دوست محمد خان د ایسټ انډیا کمپنی سره یوه لوظ نامه کول، په هرات د ایراني حکومت قبضه کول او د ایران برخلاف د انګریزانو د جنګ اعلان کول او ډیر زر د دواړو حکومتونو تر منځ صلح کیدل، بیا د امیر دوست محمد خان د فیرنګیانو سره یوه نوې معاهده کول، د هندوستان د وړومبي جنګ د ازادۍ 1857ء په وجه په افغانستان کښې د عوامو جوش پیدا کیدل مګر د امیر دوست محمد خان په دې خبره غوږ نهٔ ګریدل، د امیر دوست محمد خان په ټول افغانستان قبضه او وفات.

د افغانستان د وړومبي لام مکمل تفصیلاتو بیانولو نه پس مونږ د دوست محمد خان او د افغانستان تاریخي واقعات تر 50-1849ء پورې بیان کړې دي. په 1849ء کښې د پښتنو یو لوے وطن چې په هغې کښې د یوسفزو، پیښور، کوهاټ، بنو، ډیره اسماعیل خان وغیره هغه علاقې شاملې وے چې د پښتنو د خانه جنګو او د بادشاه ګردی په زمانه کښې د سکهانو لاس ته راغلې وے. د فیرنګیانو په قبضه کښې راغلو او د هغوي د زړهٔ مراد تر څهٔ حده پورې پوره شو. چې د هندوستان قدرتي پوله دې تر دریائے آمو پورې ورسي. اوس د دوست محمد خان د سلطنت پوله د انګریزانو د حکومت پولې سره دومره جوخته شوه چې د هغوي تر منځ صرف د ازاد قبائلو یوه وړه شان ټوکړه پاتې شوه. په دې واقعاتو کښې د دوست محمد خان د زړهٔ خواهش دا وهٔ چې زهٔ سلطنت انګریزي سره د دوستی تعلقات وساتم او هغوي سره په صلح او په امن ګزاره وکړم. انګریزانو ته هم د خیبر او د خیبر نه پورې غاړه د ټول موجوده افغانستان د پښتنو زور او طاقت او د ازاد پاتې کیدلو جذبه معلومه شوې وه له دې کبله د هغوي هم په دې کښې فائده وه چې د دوست محمد خان سره په امن وسیږي. او کوم مقصد چې هغوي د جنګ په ذریعه حاصل نهٔ کړې شو یعنې دا چې د روس او ایران او د انګریزي حکومت هند ترمنځ دې یو داسې حکومت پروت وي چې هغه د فیرنګیانو طرفدار وي. هغه اوس هغوي دوست محمد خان سره د مینې او د دوستی د تعلقاتو په ساتلو سره حاصل کړو د دې نه علاوه ایران بدستور د هرات د کمزورې حالت نه فائده

وچتول غوښتل. او دا ئ خواهش وۀ چې دا علاقه پخپل حکومت کښې شامله کړم. دغه شان د فيرنګيانو د دې برخلاف دا منشا وه چې په هيڅ صورت ايران خپل فوځي اقتدار په هرات کښې قائم نکړي چونکې د دوست محمد خان هميشه دا اصول پاتې شوي وو چې په افغانستان کښې دې بغير د پښتنو نه بل د هيچا حکومت نۀ وي له دې کبله هغه هم د ايران د دې ارادې سخت مخالف وۀ په دې سبب هم فيرنګيان او دوست محمد خان دواړه د دې مشترکه غرض دپاره متفق کيدل غوښتل. مګر کوندل خان چې په زړۀ کښې هميشه د دوست محمد خان خلاف وۀ خپل راز باز بيا ايران سره جوړ کړو. او چونکې د يار محمد خان لور وړومبے په محمد اکبر خان او د هغۀ د مرګ نه پس په غلام حيدر خان وادۀ وه نو د کوندل خان تعلقات د دوست محمد خان او د يار محمد خان د خپلوۍ په وجه يار محمد خان سره هم خراب وو. دا وجه وه چې کوندل خان به هميش شاه ايران ته د دې لمسه ورکوله چې هرات مسخر کړه. او بيا ئ ماته د باجګزارۍ په شکل کښې حواله کړه. ترکومه پورې چې يار محمد خان ژوندے وۀ تر هغې خو کوندل خان د هرات برخلاف په خپلو منصوبو کښې څۀ کاميابي حاصله کړې نۀ وه. ځکه چې يو خو خراسان کښې آصف الدوله د شاه ايران خلاف بغاوت کړې وۀ او شاه ايران د هغۀ د بغاوت په فرو کولو کښې تر ډيرې مودې مصروف وۀ بله دا چې د يار محمد خان په ژوندون کښې نۀ د کوندل خان او نۀ د شاه ايران کوششونه په دې معامله کښې کامياب کيدے شو. مګر څۀ موده پس يار محمد خان قتل شو او د هغۀ زوے سيد محمد خان د هغۀ په ځاے د هرات حاکم شو. مګر څۀ لږه موده پس هغه ليونے شو او شهزاده محمد يوسف خان چې د حاجي فيروزالدين نمسے وۀ د هغۀ جانشين شو. محمد يوسف خان خپل ځان له عيسيٰ خان نومے يو سړے چې ډير چالاک او عيار وۀ وزير مقرر کړو. لږه موده پس هغۀ محمد يوسف خان د تخت نه کوز کړو او پخپله د هرات حاکم شو. دې عيسيٰ خان بيا حکومت ايران سره په هرات کښې د ايراني اثر د پيدا کولو سازشونه شروع کړل. بيا فيرنګيان چې د دې نه خبر شول نو هغوي د خپل سفير په ذريعه ايران د دې برخلاف متنبه کړو چې حکومت برطانيه د ايران په دې اراده باندې سخت ناراض دے. په دې تنبيه اګر چې ايران ښکاره په ښکاره خو څۀ فوځي کارروائي ونۀ کړه مګر پټ په پټه هغوي هم کوندل خان سره او هم عيسيٰ خان سره خپل راز باز و. ساتلو. او دوست محمد خان هم د دې سازشونو نه بې خبره نۀ وۀ.

هرکله چې دوست محمد خان د پنجاب او د پيښور د علاقو نه واپس شو نو د هغې نه يو کال پس هغۀ په افغاني ترکستان باندې حمله وکړه او په ډيره اسانه ئ د بدخشان ټوله علاقه پخپل حکومت کښې شامله کړه. د دې نه پس د هغۀ په حکومت کښې تر 1855ء پورې څۀ داسې قابل ذکر واقعه پيښه نۀ شوه مګر څۀ وخت چې هغه د ايران په بدنيتۍ پوهه

شو نو هغهٔ د فیرنګیانو سره د باقاعده اتحاد کولو نامه او پیام شروع کړو. لارډ ډلهوزي ګورنر جنرل هند د حکومت هند د طرف نه جان لارنس د پنجاب چیف کمشنر (چې بیا وروستو لارډ لارنس شو) او کرنل هربرټ ایډورډز مقرر کړو. او امیر دوست محمد خان خپل مشر زوے غلام حیدر خان په 1855ء کښې جمرود ته راولیږلو. د دوئ په منځکښې صرف د دریو شرطونو یوه لوظنامه وشوه. د دې اول شرط دا وهٔ چې د امیر کابل او د ایسټ انډیا کمپنی په منځکښې به دوامي صلح او دوستي وي. دویم شرط دا وهٔ چې کمپني به د افغانستان په حدودو باندې د هیڅ قسم نه نهٔ ګواښیږي. او نهٔ به د هغې په اندروني معاملاتو کښې څهٔ دخل کوي. دریم شرط دا وهٔ چې امیر کابل به هم د کمپنی په علاقه باندې نهٔ بلوسیږي. او د کمپنی دوستان او دشمنان به د امیر صاحب هم دوستان او دشمنان وي.

په اکتوبر 1856ء کښې ناصر الدین قاچار شاه ایران د هرات برخلاف فوځ کشي وکړه او چونکې په هرات کښې بدامني او خانه جنګي وه او هیڅ قسم قومي فوځ د مقابلې دپاره موجود نهٔ وهٔ له دې کبله هرات ایران قبضې ته راغلو. انګریزان د خپلې زړې پالیسی مطابق په دې ناراضه شول چنانچه هغوي د خپل سفیر په ذریعه ایران ته پیغام ولیږلو چې هرات پریږدي. هر کله چې هغوي تش په زباني خبزو عمل ونهٔ کړو نو په اول نومبر 1856ء فیرنګیانو د ایران برخلاف د جنګ اعلان وکړو. او یوه لویه سمندري بیړه ئ د فوځ نه ډکه په ایران باندې د حملې کولو دپاره ولیږله. په ایران کښې د انګریزانو د مقابلې طاقت خو نهٔ وهٔ چنانچه د یو څو معمولي جنګونو نه پس ایران انګریزانو سره د صلح کولو تجویز پیش کړو. او د هغوي مطالبات ئ د هرات متعلق ومنل. او په څلورم مارچ 1857ء د ایران او د فیرنګیانو په منځکښې د پیرس په مقام یوه مستقله عهدنامه وشوه. د دې عهدنامې په ذریعه ایران دا اقرار وکړو چې ایران به چرې بیا نهٔ په هرات او نهٔ د افغانستان په بله حصه بلوسیږي.

مګر قبل د دې عهدنامې د کال 1857ء د جنوری په میاشت کښې سر جان لارنس او کرنل هربرټ ایډورډ د حکومت هند د طرف نه د جمرود په مقام بیا دوست محمد خان سره یو ځاے شول او یوه بله نوې او مفصله عهدنامه ئ هغهٔ سره وکړه. د دې عهدنامې په کولو کښې د امیر دوست محمد خان دا مدعا وه چې د انګریزانو د مالي امداد په ذریعه به زهٔ ټول افغانستان د غیر قومونو د حملو نه محفوظ وساتم. مګر هغهٔ ته دا معلومه نهٔ وه چې د دې عهدنامې په ذریعه زهٔ بیا فیرنګیانو له د افغانستان په سیاسیاتو کښې د دخل ورکولو او په افغانستان باندې د انګریزانو د دویم لام ترلو موقع په لاس کښې ورکوم. کوم قوم چې د بل حکومت نه د مالي امداد اخستلو طمع دار وي هغه هیچرې نهٔ په بیروني او نهٔ په اندروني معاملاتو کښې خپله ازادي برقرار ساتلې شي. چنانچه راتلونکي واقعاتو دا ثابته کړه چې دا عهدنامه د افغانستان د غلامی یوه پیش خیمه وه. فیرنګیانو کوم حقوق چې د دې عهدنامې د

لاندې حاصل کړل هم د هغې په بنا باندې هغوي د امير شير علي خان په زمانه کښې د افغانستان په سياسياتو کښې په زور دخل ورکړو. او د هغې زمانې نه افغانستان د فيرنګيانو د اثر او د اقتدار د لاندې کيدلو تاريخ شروع شو. د دې عهدنامې په ذريعه د انګريزانو مدعا په زياته ښه وجه پوره شوه. د دې عهدنامې اول ځلورم شپږم او اووم شرطونه ضروري دي. دې دپاره ئ مونږ ښکته درج کوؤ. نور شرطونه غير ضروري دي. له دې کبله هغه پريږدو.
اول شرط دا وۀ چې چونکې شاه ايران فيرنګيانو سره د خپلې معاهدې نه خلاف په هرات باندې حمله وکړه او دغه شان هغه د افغانستان په نورو مقبوضاتو هم وبلوسيدو او چونکې انګريزي حکومت هغوي سره بر سر جنګ دے د دې کبله حکومت برطانيه امير دوست محمد خان سره دا اقرار کوي چې مونږ به د افغانستان د حفاظت دپاره هغۀ له ماسالي امداد ورکوؤ چې د هغې مقدار به لس زره پونډه ماهوار وي.
ځلورم شرط دا وۀ چې انګريزي حکومت به څۀ انګريزي افسران کابل، قندهار، بلخ يا بل هغه ځاے ته چې کوم ځاے کښې د امير دوست محمد خان فوځ د ايران برخلاف را يوځاے شوي وي، د دې غرض دپاره ليږي چې هغوي دا وګوري چې دا لس زره پونډه صرف په فوځي ضروورياتو باندې خرڅ کيږي او بيا به دغه افسران خپل حکومت ته د دې ټولو معاملو رپورټ راليږي. د دې افسرانو به د افغانستان فوځونو سره هيڅ غم غرض نۀ وي. اونۀ به هغوي د ملک په اندروني انتظام کښې څۀ دخل ورکوي. امير صاحب به هغوي صرف د جنګ متعلق د ټولو سياسي او فوځي امورو نه خبروي. او تر کومه پورې چې دا افسران د هغۀ په ملک کښې مقيم وي نو امير صاحب به د هغوي د حفاظت او د ښۀ سلوک ذمه دار وي.

شپږم او اووم شرطونه دا وو چې دا ماهوار رقم به انګريزي حکومت د جنګ په ختميدلو بندوي. او هر کله چې د دې رقم ورکول بند شي نو انګريزي افسران به د افغانستان نه را رخصتيږي او بيا به صرف يو ديسي وکيل چې هغه به انګريز نۀ وي د حکومت هند د طرفه په کابل کښې وسيږي او د امير صاحب يو سړے به په پيښور کښې مقيم وي.

د دې عهدنامې نه ډير ورومبے کوندل خان د قندهار وفات شوے وۀ. او چونکې د هغۀ د مرګ نه پس د هغۀ په اولاد کښې ډيرې خانه جنګئ او فسادونه رادوڅاره شول چې د هغې علاقې په امن کښې ئ لوے خلل اچولے وۀ له دې کبله دوست محمد خان فوځونه قندهار ته وليږل او په هغه ملک ئ قبضه وکړه.

د جنورى 1857ء د عهدنامې ځلورم شرط په سلسله کښې انګريزي حکومت هند يو کميشن د مارچ په مياشت کښې د مردان د ګائيډز فوځ د افسر ميجر لمسډن او د سر جان بيليو او د ګائيډ د يو څو تنو سورو سره د پيښور نه د کرمې په لار افغانستان طرف ته واستولو

او غلام حسین خان نومے وکیل ئ په کابل کښې مقرر کړو. دې فوځي افسرانو په لاره د شتر گردن د درې فوځي معائنې وکړې او د غزني په لار قندهار ته په شپږویشتم اپریل ورسیدل. دا افسران لا هم هغه شان په قندهار کښې وو چې د هندوستان د مشهور او معروف بغاوت کال 1857ء واقعه پیښه شوه او د هغې ملک د اطرافو نه د فیرنگیانو د قتلیدلو او د هندوستاني فوځونو د باغي کیدلو خبرونه افغانستان ته راورسیدل. لا ډیره موده نۀ وه تیره شوې چې په ټول افغانستان کښې دا خبرونه خوارۀ شول چې فیرنگیانو ځاے په ځاے شکستونه وخوړل او په ټول هندوستان کښې دِ هغوي حالت نازک دے. د دې خبرونو اثر قدرتاً د افغانستان په رائ عامه وشو. او یو ځل بیا د هغوي په زړۀ کښې دا ولوله راپیدا شوه چې د خپل پلار نیکۀ ملک چې فیرنگیانو په زور د هغوي نه لاندې کړے دے واپس د فیرنگیانو نه واخلو. چنانچه هغوي ټولو په جمع دوست محمد خان ته ووئیل چې دا موقع ده چې مونږ کم از کم تر اټک پورې په ټوله هغه علاقه حمله وکړو چې په کومو کښې د پښتنو ابادي ده. ملیانو او سردارانو هم د هغۀ د پاخولو ډیر کوشش وکړو او د افغانستان د یو گوټ نه تر بل گوټه پورې یو لوے جوش راپیدا شو مگر په دوست محمد خان څۀ اثر ونۀ شو. د پیښور د علاقې نه اکثر فوځونه په ښکته روان شوي وو او د پنجاب او شمال مغربي سرحدي اضلاع د فوځونو نه بالکل خالي شوې وے. سر جان لارنس د پنجاب او سرحدي صوبې لفټیننټ گورنر د افغانستان د دې رائ عامه نه واقف شو او دا خیال ئ راپیدا شو چې کۀ چرې په دې موقع دوست محمد خان حمله وکړه نو د هغۀ کامیابي یقیني ده. بلکې دا هم ممکن ده چې د ټول هندوستان نه زمونږ گوتې ووځي. پس هغۀ د دوست محمد خان د رضا کولو دپاره خپل حکومت ته دا تجویز پیش کړو چې فیرنگیانو له د پیښور علاقه دوست محمد خان له په صلاح ورکول پکار دي. د دې دپاره چې هغه په مونږ حمله ونۀ کړي. او دغه شان زمونږ حالت نور هم خطرناک نشي مگر هر کله چې حکومت هند د دوست محمد خان د طرف نه هیڅ عملي قدم د انگریزانو برخلاف د بلوسیدو او د خپل ملک د واپس کولو نۀ لیدو نو د سر جان لارنس په دې تجویز هیچا غوږ کښینښودو او دې معاملې د لارنس د تجویز نه مخکښې څۀ ترقي ونۀ کړه. حقیقت دا وۀ چې د هغۀ په زړۀ باندې د انگریزانو د فوځي طاقت رعب تر دې حده پروت وۀ چې د انگریزانو مقابلې ته هغۀ هیچرې ځان نۀ نیولو. دې کښې شک نشته چې دوست محمد خان یو ډیر قابل، بهادر او تجربه کار سیاستدان وۀ مگر د کلکتې د یو څو میاشتو قیام هغۀ ته د انگریزانو برخلاف د یو هیبتناک قدم د وچتولو اجازت نۀ ورکولو. د هغې زمانې د ټولو سیاستدانانو دا متفقۀ رائ ده چې کۀ چرې په دې موقع دوست محمد خان د انگریزانو نه په زورداره الفاظو کښې بغیر د یوې لوېې فوځي کارروایی کولو نه، مطالبه کړے وے نو هغوي به په باقي هندوستان باندې د قبضې ساتلو په

خاطر کم نه کم د صوبه سرحد ټوله علاقه هغهٔ ته حواله کړې وه. مګر د کم همتۍ او کمزورۍ په سبب دوست محمد خان دا زرينه موقع د پيښور وغيره د حاصلولو، د لاس نه وغورځوله. په دې موقع سلطان محمد خان او پير محمد خان هم هغهٔ ته د دې صلاح ورکړه چې کم از کم د خپل قوم د علاقو د واپس اخستو دپاره دا وخت د جهاد نشان وچت کړه مګر د هغهٔ زوي اعظم خان هغهٔ ته ووئيل چې دا وخت انګريزانو سره جنګ کول مناسب نهٔ دي. غلام حيدر خان د هغهٔ مشر زوی هم د جنګ په حق کښې وهٔ مګر دوئ ټولو ته دوست محمد خان په جواب کښې ووئيل چې زهٔ دا انګريزان ډير ښهٔ پيژنم دې کښې شک نشته چې په هندوستان کښې ډير فيرنګيان قتل شول مګر هغوي به د سمندر په لاره نور د زرګونو په شمار کښې د خپل ملک نه راشي او بيا به ټول هندوستان واخلي. دا وخت ميجر لمسډن او لفټيننټ سر جان بيليو په قندهار کښې وو او بيا د 1858ء په سپرلي کښې هندوستان ته واپس راغلل.

د اکتوبر 1856ء د جنګ نه پس اګر چې ايران په ظاهره د هرات د اخستو د دعوې نه دست بردار شو مګر ناصر الدين شاه په هغې کښې د خپل اقتدار د پيدا کولو پټ پټ کوششونه پرې نښودل. د ځلورم مارچ 1857ء د عهدنامې نه پس چې ايرانيانو د هرات قبضه پريښوده نو په هرات باندې احمد خان نومې يو بارکزی چې د امير دوست محمد خان تربور وهٔ حاکم شو. اګر چې هغه په ظاهره خودمختار وهٔ مګر چونکې د دوست محمد خان مخالف وهٔ د دې دپاره هغهٔ د شاه ايران نه پټ مالي امداد د دوست محمد خان برخلاف اخستلو او په دې طريقه هغهٔ خپل ځان د ناصر الدين زير اثر کړو. اخر کار انګريزانو امير دوست محمد خان له د دې خبرې ترغيب ورکړو چې تهٔ پخپله په هرات باندې فوځ کشي وکړه او د هميش دپاره د ايران ګوتې د دې علاقې نه وباسه.

هر کله چې د هرات حکومت د يار محمد خان وزير کبير د مرګ نه پس ډير کمزوری شو او د ايران د سازشونو د مقابلې دپاره په هغه ځای کښې څوک مضبوط سړی پاتې نشو او امير دوست محمد خان سره د انګريزانو جارحانه او مدافعانه عهدنامه وشوه نو لارډ کيننګ په 1857ء کښې حکومت برطانيه ته دا صلاح او مشوره ورکړه چې د حکومت هند اوس په دې کښې فائده ده چې د افغانستان ټوله علاقه دې د يو مضبوط او قابل حاکم د لاندې يو ځای کړې شي. تر کومه پورې چې د دوست محمد خان او د انګريزانو ترمنځ د دوستۍ او اتحاد تعلقات نهٔ وو قائم شوي نو د انګريزانو دا پاليسي وه چې هرات (چې د هندوستان کُنجي ګڼلې شوه) دې د دوست محمد خان په تسلط کښې نهٔ وي بلکې د يو داسې سړي په لاس کښې دې وي چې هغه پوره طور زمونږ په قابو کښې وي. او د روس د اثر نه بالکل بهر وي. چنانچه انګريزان هم په دې کوشش کښې لګيا وو چې هرات دې بدستور د

سدوزو په قبضه کښې پاتې وي. او په دې کښې هغوي ښهٔ کامیاب هم وو. مګر څهٔ وخت چې د دوست محمد خان په دوستۍ د انګریزانو ښهٔ اعتبار پیدا شو او د هرات په حکومت کښې شپه او ورځ خانه جنګۍ او بدامنۍ شروع شوې نو د هغوي په زړه پالیسۍ کښې تبدیلي پیدا شوه او دا ئ غوښتل چې په ځاے د دې چې حکومت برطانیه ته هر وخت د هرات د حفاظت متعلق پریشاني او فکرونه لګیدلي وي دا به بهتر وي چې په هغې د یو داسې پښتون تسلط وشي چې هغه یو خو پخپله طاقتور او مضبوط وي او بل دا چې د فیرنګیانو ملګرے هم وي. چونکې د انګریزانو دا یقین وهٔ چې په ټول افغانستان کښې داسې یو سړے هم نشته چې د هغهٔ د لاس نه په هندوستان باندې د حملې کولو څهٔ خطره وي هر څومره کهٔ د هغهٔ حکومت وسیع او طاقت ئ ډیر وي له دې کبله لارډ کیننګ هم دا تجویز وکړو چې د دې قسم سړے د دوست محمد خان نه بغیر بل څوک موزون نشته. مونږ د لارډ کیننګ راۓ په دې باره کښې هم د هغهٔ په خپلو الفاظو کښې درج کوؤ :

" If upon recovering Herat from Persia, we set it up as an independent state my belief is, that we shall set up a sham which we shall not be able to sustain. I do not share the opinion that there is danger or trouble to British India in the consolidation of the Afghan Nauon. On the contrary, I believe we cannot encourage that consolidation too much. The Afghans themselves, even if united, can never be formidable to the British Power, if only we will deal wisely with them. Their strength as aggressors ceased to be any reasonable source of alarm to us from the time when the plain of Peshawar and the Trans Indus Valley passed away from them, and the Sikhs no longer intervened between us. Now that a wise foresight has fixed our boundary at the foot of their own impassable mountains, leaving no room for a single battalion to deploy against us, we stand in a position of security as regards aggression from that quarter, which I venture to think, calls for a change of policy. Instead of being content that Afghanistan should continue divided, and thereby weak for offence. I would desire to see it united and strong; a compact barrier in our front. By encouraging thus as far as lies in our power, at all events by not opposing it, we have a far better chance of extending our influence across the breadth of Afghanistan upto Hirat than by laying down, as a condition, that Hirat shall be maintained in its own state of independence. That is should be independent of Persia, we may rightly claim, for Hirat is Afghan, and not Persian. But that it must be independent of the chief authority at Kabul, I would not require or even concede. I would concede it no more that I would concede the pretension now put forward by the Shah, that Qandahar must be independent of that authority." Lord Canning's minute relating to the Agreement with Afghanistan in 1857.

ترجمه : " کهٔ چرې مونږ هرات د ایران نهٔ د واپس اخستلو نه پس یو خودمختار حکومت کړو نو دا به هسې یو نقلي څیز وي چې مونږ به ئ بیا قائم ساتلے نشو. زما دې راۓ سره اتفاق

نشته چې د پښتون قوم په يو ځاے کيدو کښې د هندوستان انګريزي علاقې ته د خطرې يا د نقصان انديشه ده. د دې برخلاف زما په خيال کښې مونږ له د هغوي په را يوځاے کولو کښې انتهائي کوشش پکار دے. پښتانهٔ پخپله کهٔ چرې ټول متفق هم شي نو بيا هم هغوي د برطانيه په مقابله کښې طاقتور کيدے نشي. په شرط د دې کهٔ مونږ هغوي سره لږ په عقل چلېږو. د هغوي د حملې طاقت د هغې ورځې نه زمونږ دپاره خطرناک پاتې نشو د کومې نه چې د پيښور ميدان او د دريائے سندهـ دره د هغوي د لاس نه ووته او زمونږ او د هغوي تر منځ د سکهانو علاقه پاتې نهٔ شوه. نو اوس چې زمونږ د حکومت پوله د ډيرې ښې دور انديشی په سبب د هغوي خپل ناقابل ګزر غرونو ويخ ته ورسيده او زمونږ برخلاف هغوي سره د يو پلټنې د جنګولو ځاے هم پاتې نشو نو مونږ اوس د هغې طرف د جارحانه حملې نه بالکل محفوظ او بچ يو. او له دې کبله مونږ له په خپلې پاليسی کښې تبديلي پکار ده. په ځاے د دې چې مونږ قناعت وکړو چې افغانستان دې بې اتفاقه وي چې په مونږ باندې د حملې کولو طاقت پکښې نهٔ وي نو زما خو دا رضا ده چې افغانستان دې متفق او مضبوط شي چې زمونږ مخې ته د يو مضبوط ديوال کار وکړي. کهٔ چرې مونږ څومره چې زمونږ نه کيدے شي په دې سلسله کښې کوشش وکړو يا کهٔ مونږ د دې مقصد مخالفت ونهٔ کړو نو په دې ذريعه زمونږ دپاره په ټول افغانستان کښې عن تر هرات پورې د خپل اثر خورولو زياتې ښه توقع کيدے شي. په نسبت د دې چې مونږ دا شرط هغوي ته پيش کړو چې هرات به جدا يو مستقل حکومت وي. زمونږ دا خبره چې هرات دې د ايران نه خودمختار وي بالکل درسته ده ځکه چې هرات د پښتنو ملک دے نه چې د ايران. مګر دا خبره چې هغه دې د کابل د امير د تسلط نه هم بهر وي زهٔ به دا هيچرې ونهٔ غواړم. او نهٔ به ئې منظوره کړم. ماته دا هم دغه شان نامنظوره ده لکه د شاه دا موجوده وينا چې قندهار دې د امير کابل نه خودمختار وي."

د کال 1857ء نه پس حکومت هند او حکومت برطانيه د لارډ کيننګ په دې رائې باندې عمل شروع کړو او امير دوست محمد خان او د هغهٔ د مرګ نه پس امير شير علي خان ته ئې بار بار دا وليکل چې د حکومت برطانيه طرز عمل به د مخکښې دپاره دا شان وي چې په هغې باندې د افغانستان حکومت نور هم وسيع، مضبوط او متحد کيږي. چنانچه دوست محمد خان يو جرار لښکر په هرات باندې وروخيژولو او د يوې زبردستې محاصرې نه پس ئې په اول جون 1863ء هغه فتح کړو. دغه شان د هغهٔ د مرګ نه وړومبے د درهٔ خيبر نه چې واخلې ترکستان پورې او د بدخشان او کوهستاني علاقې نه چې واخلې نو تر قندهار او د قندهار نه تر هرات پورې د ټول ملک واحد بادشاه شو. مګر په دې فتح باندې صرف نهه ورځې تيرې شوې وے چې هغه په هرات کښې وفات شو.

# اووم باب

د دوست محمد خان زامن، شیر علي خان ولیعهد مقرر شو. شیر علي خان او انګریزان، شیر علي خان او د افضل خان زوی عبدالرحمٰن خان، د کرمې بغاوت، په کابل د عبدالرحمٰن خان چپاؤ، او د شیر علي خان ماتې، افضل امیر شو، شیر علي خان او عبدالرحمٰن خان سره جنګونه، د شیر علي خان تیښته هرات ته، افضل خان مړ شو، عظیم خان امیر شو، د عبدالرحمٰن خان شکست او مشهد ته تښتیدل او په ټول افغانستان د شیر علي خان قبضه.

د دوست محمد خان د وفات نه پس د هغهٔ اووهٔ زامن پاتې شول. په دوئ کښې محمد افضل خان د ټولو نه مشر وهٔ او هغهٔ پسې د هغهٔ سکه ورور اعظم خان وهٔ. د هغوي دواړو نه کشر شیر علي خان او شیر علي خان پسې د هغهٔ سکه وروڼه شریف خان او امین خان وو. د دوئ نه علاوه اسلم خان او حسین خان هم د هغهٔ زامن وو. د اکبر خان د مرګ نه پس دوست محمد خان په خپل ژوندون کښې غلام حیدر خان خپل ولیعهد مقرر کړے وهٔ مګر هغه هم د هغهٔ په ژوند کښې مړ شو او بیا د هغهٔ نه پس هغهٔ شیر علي خان خپل جانشین مقرر کړو. د دې تقررۍ اطلاع هغهٔ باضابطه حکومت هند ته د لارډ کیننګ په عهد حکومت کښې ورکړه او هغوي دا تقرري تسلیم کړه. دوست محمد خان په څهٔ وجه محمد افضل خان خپل مشرے زوے پریښودو او شیر علي خان ئ ولیعهد کړو. د دې متعلق مختلفې رایې دي یوه رائ دا ده چې چونکې د شیر علي مور پوپلزۍ وه او د محمد افضل خان مور بنګښنه وه. په دې وجه دوست محمد خان د افضل خان په ځاے شیر علي خان خپل جانشین کړو. مګر د پښتنو د رواج مدنظر دا رائ غلطه معلومیږي. په پښتنو کښې بنګښ هم دغه شان سوچه پښتانهٔ دي لکه څنګه چې پوپلزي دي. البته دا چې دراني نهٔ دي. بله دا چې د زوي حسب نسب پلار پسې ځي نه چې مور پسې. او تر څو پورې چې د هغهٔ په پیدائش کښې څهٔ شرعي نقص نهٔ وي او یا د هغهٔ مور کم ذاته نهٔ وي یعنې وینځه یا خدمتګاره، نو هر زوے به د پښتنو په عام رواج کښې شریف النسب ګڼلے شي. بله رائ د شیر علي خان د ولیعهد کیدو متعلق دا وه چې افضل خان په کال 1839ء کښې د انګریزانو په افغانستان باندې د حملې کولو په وخت د غزني نه بغیر د هغوي د مقابلې کولو نه کابل ته راتښتیدلے وهٔ او غلام حیدر خان ئ یواځې د هغوي مقابلې ته پریښې وهٔ. دغه شان دا هم وئیلے شي چې په بامیان کښې هغهٔ څهٔ خاص د بهادرۍ او قابلیت ثبوت نهٔ وهٔ ورکړے. هر کله چې هغه او فیرنګیان سره مخامخ شوي وو. اعظم خان اخلاقاً پریوتے سړے وهٔ او په دې وجه هغه پښتنو سردارانو کښې غیر هردلعزیز وهٔ. دغه وجوهات وو چې دوست محمد خان د خپلو دوؤ مشرانو زامنو په موجودګۍ کښې شیر علي خان خپل ولیعهد کړو. دغه دویمه راے زیاته معقوله او مدلله

ښکاري. د شير علي خان متعلق د هغې زمانې د سياستدانانو دا رائ ده چې اګر چې په بهادرۍ کښې هغه اکبر خان او غلام جيدر خان ته نۀ رسيدو مګر دې کښې شک نشته چې په خپلو ورونو کښې هغه زيات مدبر او دلير وۀ.

شير علي خان د خپل پلار د مرګ نه پس فوراً ځان امير کړو او د دې اطلاع ئ حکومت هند ته ورکړه. او دا ئ هم ورته وليکل چې کوم خواږۀ تعلقات امير مرحوم ستاسو حکومت سره شروع کړي وو هم هغه قسم تعلقات به زۀ جاري ساتم. ديخوا حکومت هند ته د خپلو ماتحتانو په ذريعه دا افواه زا رسيدلې وه چې د شير علي خان په امير کيدو د هغۀ دوارۀ مشران ورونه يعنې محمد افضل خان او اعظم خان معترض دي. له دې کبله لارډ ايلګن ګورنر جنرل هند هغۀ ته سمدستي د منظورۍ ځۀ جواب ور نۀ کړو. بلکې د راتلونکو واقعاتو په انتظار کښې کښيناستو. افضل خان او اعظم خان دوارو په ابتدا کښې د شير علي خان د تخت نشين کيدو برخلاف ځۀ لاس پښې ونۀ خوځول. او په ظاهره د هغۀ په امير کيدو رضامند معلوم شول. مګر لا ډيره موده نۀ وه تيره شوې چې د اعظم خان د رويې نه د شير علي خان په زړۀ کښې دا شان شک پيدا شو چې ګني هغه زما په امير کيدلو ناخوښه دے. شير علي خان په دې ورځو کښې په غزني کښې وۀ او اعظم خان د خوست او د کرمې حاکم وۀ. په اګست 1863ء کښې شير علي خان چې د دې خبرې نه خبر شو نو سمدستي هغه کرمې ته ورغے او په قرآن شريف باندې ئ د هغۀ نه قسم واخستو چې تۀ به زما خلاف بغاوت نۀ کوے. د دې نه پس په 1863ء کښې ځۀ داسې واقعه پيښه نۀ شوه. چې د هغې نه ځوک د شير علي خان په امير کيدلو ناراض معلوم شوے وي. چنانچه په دسمبر 1863ء کښې سر وليم ډينيسن وائسرائے هند د هغۀ د امير کيدو نه شپږ مياشتې پس شير علي خان امير تسليم کړو. د دې تسليمولو نه پس لارډ لارنس د هندوستان وائسرائے شو. هغۀ ته شير علي خان د ګورنمنټ هند د خط په جواب کښې وليکل چې محمد علي خان زما زوے وليعهد منظور کړئ او شپږ زره ټوپک په طور د امداد راکړئ. لارډ لارنس محمد علي خان د هغۀ جانشين تسليم کړو مګر د ټوپکو د ورکولو نه ئ انکار وکړو.

په اپريل 1864ء کښې افضل خان او اعظم خان دوارو بغاوتونه وکړل. اعظم خان لا هم هغه شان د خوست او د کرمې حاکم وۀ. او افضل خان د بلخ ګورنر وۀ. د افضل خان مقابلې له خو هغه پخپله ورروان شو او د اعظم خان مقابلې له ئ خپل جرنيل محمد رفيق واستولو. محمد رفيق بلا تکليف د اعظم خان برخلاف کامياب شو او اعظم خان په انګريزي علاقه کښې پناه واخسته. اعظم خان له د شکست ورکولو نه پس محمد رفيق سره د خپلو فوځونو د شير علي خان امداد له روان شو. او لا د شير علي خان او افضل خان د لښکرو تش هراول د باجګاه په مقاه مخامخ شوي وو چې محمد رفيق را ورسيدو. افضل خان دپاره د دې

دوؤ لښکرو مقابله کول ناممکن وو هغهٔ فوراً د صلح درخواست وکړو. شير علي خان په دې باره کښې ډير دريا دل وو هغهٔ نهٔ صرف دا چې افضل خان معاف کړو بلکې هغه ئ د بلخ په حکومت کښې بدستور گورنر پريښودو. لا شير علي خان د بلخ نه را رخصت شوے نهٔ وو چې يو ځل هغهٔ عبدالرحمٰن خان چې د افضل خان زوے وؤ خپل دربار ته د فرمان برداری د اظهار دپاره راوبللو. مگر عبدالرحمٰن خان رانغلو او بخارا ته وتښتيدو. په دې باندې د شير علي خان په زړهٔ کښې بيا شک پيدا شو چې عبدالرحمٰن خان د خپل پلار په لمسه تښتيدلے دے. او د افضل خان مطلب ما سره د زړهٔ د اخلاص نه د دوستی تعلقات ساتل نهٔ دي. بلکې هغه په يو مناسب موقع دوباره د بغاوت کولو اراده لري. چنانچه هغهٔ فوراً افضل خان گرفتار کړو او د هغهٔ په ځاے ئ خپل ورارهٔ فتح محمد خان د بلخ حاکم مقرر کړو. او کابل ته واپس راغلو. عبدالرحمٰن خان چې د خپل پلار د گرفتاری نه خبر شو نو ډير غصه شو او دا خيال ئ وکړو چې شير علي خان زما پلار سره فريب وکړو. او د صلح نه پس ئ په چل گرفتار کړو. چنانچه هغهٔ د امير بخارا نه په افغانستان باندې د حملې کولو دپاره امداد وغوښتو. شير علي خان لا د عبدالرحمٰن خان د دې مجوزه حملې د تدارک تدبيرونه کول چې خبر راغے چې شريف خان چې د هغهٔ سکه ورور او د هغهٔ د لاسه د قندهار گورنر وؤ بغاوت کړے دے. او امين خان د هغهٔ ملگرے شوے دے. ديخوا په کرمه کښې اعظم خان بيا د خوست او د کرمې قبائل راوچت کړل او د بغاوت جنډه ئ وچته کړه. شير علي خان پخپله قندهار ته لاړو او محمد رفيق ئ د کرمې په طرف وليږلو. محمد رفيق خان بيا په ډيره اسانتيا اعظم خان له شکست ورکړو. مگر شريف خان او امين خان د قلات غلزي په خوا کښې د کجباز په مقام سره د يو لويه لښکره په جون 1865ء کښې مقابلې دپاره راووتل په دواړو فريقو کښې يو خونريز جنگ وشو. څهٔ وخت چې جنگ ښهٔ تود شو نو محمد علي خان د شير علي خان زوے او امين خان دست به دست په جنگ کښې مخامخ شول. محمد علي خان د امين خان د لاس نه قتل شو. او امين خان د محمد علي ملگرو قتل کړو. د دې نه پس شريف خان شکست وخوړو. او په ډير ابتر حالت کښې وتښتيدو. شير علي خان په دې جنگ کښې خو ډيره ښه کاميابي وکړه مگر د محمد علي خان په مرگ هغه دومره غمژن شو چې دا فتح د هغهٔ په زړهٔ بالکل ونهٔ لگيده. څو څو شپې او څو څو ورځې هغهٔ د محمد علي د مرگ په غم کښې سرگومه پروت وؤ. او ليونتوب ته نزدې شو. څو څو مياشتو پورې هغهٔ د حکومت کار له گوتې ورنهٔ وړې. او نهٔ ئ چا سره ليدل کتل وکړل. په دې اثنا کښې چې لا شير علي خان په قندهار کښې وؤ خبر راغلو چې عبدالرحمٰن خان د ترکستان او د بخارا د طرف نه په کابل باندې را روان دے. او ډير خلق هغهٔ سره ملگري شوي دي. سره د دې خطرناک خبر شير علي خان د محمد علي د غم په سبب د قندهار نه ونهٔ خوځيدو. شريف خان هم هغهٔ معاف

کړو. ولې هر کله چې هغهٔ پخپله د عبدالرحمٰن مقابلې ته ونهٔ وتو او هم هغه شان په قندهار کښې ناست وهٔ نو عبدالرحمٰن د هغهٔ جرنيل محمد رفيق خان ځان سره شامل کړو او بې مقابلې په څليريشتمه فروری 1866ء په کابل ورننوتو. عظيم خان د هغهٔ ترهٔ چې د انګريزانو په علاقه کښې شړونکے وهٔ د دې نه څو مياشتې وړومبے د دير او چترال په لاره بدخشان ته رارسيدلے وهٔ او عبدالرحمٰن سره د باجګاه په مقام يو ځاے شوے وهٔ. عظيم خان چې څهٔ وخت بدخشان ته تلو نو په سوات کښې د اخون احمد صاحب نه د دعا دپاره سيدو ته هم تلے وهٔ.

اوس امير شير علي خان له خود ورغلو. چنانچه هغهٔ سمدستي د قندهار نه پنځو زرو سورو نهٔ زره پيادوؤ او پنځويشت توپو سره را روان شو. او د غزني په لاره ئې په کابل باندې پيشقدمي وکړه. په نهم مئ د سيد اباد په مقام د عبدالرحمٰن خان او د هغهٔ د لښکرو مقابله وشوه. عبدالرحمٰن خان د خپل فوځ نه چارچاپيره خندقونه کنستي وو او په ښهٔ محفوظ مقام کښې پروت وهٔ. شير علي خان په ډيره بهادرئ د هغهٔ په خندقونو او فوځونو ورپريوتو مګر عبدالرحمٰن هغه حمله پستنه کړه. شير علي خان درې ځله دغه شان چپاوونه په هغهٔ وکړل خو کامياب نشو په څلورم چپاؤ کښې هغهٔ دومره په جوش او په تيزئ حمله وکړه چې قريب وه چې د عبدالرحمٰن خان فوځ ئې مات کړے وے مګر په دې وخت کښې کوم بې قاعدې فوځ چې هغهٔ په قندهار کښې برتي کړے وهٔ هغوي د عبدالرحمٰن خان په طرف واؤړيدل او په دې سبب شير علي خان دا شان شکست وخوړو چې صرف پنځو سوؤ سورو سره د ميدان جنګ نه وتښتيدو او قندهار ته لاړو.

محمد افضل خان د عبدالرحمٰن پلار لا هم هغه شان د شير علي خا ن په لاس کښې ګرفتار وهٔ او په دې ورځو کښې په غزني کښې بنديوان وهٔ. هر کله چې شير علي خان شکست وخوړو او غزني ته راورسيدو نو د قلا ګورنر شير علي خان ته دروازې پورې کړې او محمد افضل ئې پريښودو او عبدالرحمٰن خان ته ئې وليږلو. افضل خان چې کابل ته ورسيدو نو ځان ئې امير کړو او حکومت هند ته ئې اطلاع ورکړه. لارډ لارنس د خپل وکيل عطا محمد خان په ذريعه افضل خان ته مبارکباد ورکړو. غلام حسين خان زوړ وکيل انګريزانو د کابل نه د شير علي خان په دې شکايت باندې واپس هندوستان ته رابللے وهٔ چې هغهٔ د شير علي خان برخلاف د هغهٔ سردارانو سره پړې جنبې او سازشونه جوړول.

د کال 1866ء په منې کښې شير علي خان د قندهار د طرف نه يو لوے لښکر سره د کابل په طرف پيشقدمي وکړه. امير محمد افضل خان خپل زوي عبدالرحمٰن خان او سکه ورور عظيم خان د هغهٔ د مقابلې دپاره مقرر کړل. عبدالرحمٰن خان د ډيرې مودې نه د شير علي خان د دې حملې د مقابلې دپاره خپل فوځونه تيار ساتلي وو ليکن عظيم خان بالکل تيار

نـهٔ وهٔ. له دې کبله عبدالرحمٰن خان یواځې دولس زره فوځ سره د غزني په طرف روان شو. او پـه هـغـه ځـاے کښـې ئ د خپـل تـرهٔ د فوځ د انتظار اراده وکړه. عبدالرحمٰن خان ته په غزني کښـې د شـلـو ورځـو د انتظار نه پس معلومه شوه چې شیر علي خان قلات توخي ته رارسیدلے دے. عبـدالـرحـمٰن خان سمدستي خپل پلار ته امداد دپاره ولیکل او پخپله د موکر په طرف وروړانـدې شـو. پـه هـغـه ځـاے کښـې هغهٔ بیا د خپل ترهٔ په انتظار کښې دولس ورځې تیرې کړې. ولې هغه را ونهٔ رسیدو. بیا په قلات وروړاندې شو.

پـه دویـمه ورځ شیر علي خان لس زره سوارهٔ د خپلو دوؤ جرنیلانو شاه پسند خان او فتح محمد خان د کمان لاندې په دې کار مقرر کړل. چې هغوي د عبدالرحمٰن خان د کیمپ نـه چـاپیـره عـلاقـه تـالا کړي چې هغهٔ ته د رسد په حاصلولو کښې مشکلات پیدا کړي. مګر عبـدالـرحمٰن خان ناساپي شپه په شپه په هغې قلا باندې چپاؤ وکړو چې په کومه کښې دا فوځ دیـره وهٔ او هـغـوي ئ ځهٔ تس نس کړل او څهٔ ئ ونیول. د دې نه پس تر یوولسو ورځو پورې دواړه فـوځـونـه یو بل ته مخامخ پراتهٔ وو مګر په یو بل باندې ئ د حملې کولو زړهٔ ونکړو. په دې کښـې عظیم خان سره د خپلو دریو زرو سورو او نورو پلټنو راورسیدو لیکن چونکې شیر عـلـي خـان قلات ډیر مضبـوط کـړے وهٔ له دې کبله هغوي په هغهٔ باندې حمله ونهٔ کړه او د نوا ارغستـان او د مـنـډې حصار په لاره چې د هوتکي غلجو علاقه ده د قندهار په طرف روان شو. او د شیـر عـلـي خـان فـوځـونـه ئ په ځاے پریښودل شیر علي خان چې دا ولیدل نو هغهٔ هم د قلات غلزي په لاره قندهار طرف ته روان شو. اوس د دواړو فوځونو په منځکښې قندهار ته د وړومبے رسیدو دپاره مقابله شروع شوه. اخر د پنځو ورځو متواتر مزل نه پس شیر علي خان پـه عبـدالـرحمٰن خان باندې د حملې کولو اراده وکړه په فریقینو کښې یو سخت جنګ وشو ولـې عبـدالـرحمٰن خان په ډیر هنر اوقابلیت سره د شیر علي خان مقابله وکړه. شیر علي خان شـکـسـت وخوړو او ډیر مال اسباب او پنځهٔ دیرش توپې ترینه په میدان پاتې شوې. شیر علي خـان نیغ هـرات تـه وتښتیـدو. او عبـدالرحمٰن خان او عظیم خان په قندهار قبضه وکړه. څهٔ ورځې پس عظیم خان د قندهار ګورنر او عبدالرحمٰن خان واپس کابل ته راغے.

هرکله چې د شیر علي خان او د عبدالرحمٰن خان په منځکښې دا جنګونه روان وو نو سـردار فیـض محمد خان د بلخ ګورنر د امیر محمد افضل خان برخلاف بغاوت وکړو افضل خان د عظیم خان زوي سرور خان د هغهٔ د سرکوبۍ دپاره ولیږلو. ولې د آب کلي په مقام چې د ایبک نـه د پـنـځو ورځو په مزل لرې دے سردار فیض محمد خان هغه له شکست ورکړو سـرور خان بیا د باجګاه په مقام خپل فوځونه راجمع کړل او جګړه ئ وکړه او بیا ئ شکـسـت وخـوړو او ډیـر افسـران تـریـنـه قتـل شـول. د دې نـه پـس سردار فیض محمد خان قطغن او بدخشان طرف ته مخه وکړه او دا علاقې ئ هم لاندې کړې.

د 1867ء پـه اوړي کښې شير علي خان د فيض محمد خان د بغاوت نـه فائده واخسته. او بلخ تـه د امير افضل خان برخلاف د جنګ کولو په نيت فيض محمد خان له راغـلـو شيـر عـلـي خان خپل فوځ په دوؤ حصو کښې تقسيم کړو د يوې حصې سالاري ئې په خپل لاس کښې واخسته او فيض محمد خان ئې د بلې حصې سالار کړو. فيض محمد خان درۀ پنج شير ته په دې نيت راغلو چې د کابل کوهستان په لاره په کابل حمله وکړم. په دې پنج شير کښې د شير علي خان په انتظار کښې کښيناستو. ديخوا نه عبدالرحمٰن خان يو ښۀ مضبوط فوځ سره د هغۀ مقابلې ته د چريکار په طرف روان شو. د هغه ځايے نه هغۀ شواشو ګل بهار نومے يو ځايے او قلعه الله داد ته خپل فوځونه ورسول. چې د درۀ پنج شير په خلۀ کښې پراتۀ دي. د فيض محمد خان دا بالکل طمع نۀ وه چې عبدالرحمٰن خان د کابل نه دومره لوے فوځ سره دومره زر زما مقابلې ته راورسيږي. ديخوا شير علي خان هغۀ ته ليکلي وو چې زما تر رسيدو پورې جنګ مۀ کوه. ولې عبدالرحمٰن خان په بله ورځ سحر په ديارلسم ستمبر 1867ء په فيض محمد خان باندې چې د غرونو په سر د سنګرونو په شا په پوخ او محفوظ مقام باندې ديره وۀ حمله وکړه. د دواړو فوځونو تر منځه يوه سخته جګړه وشوه ليکن فيض محمد خان شکست وخوړو. او په جنګ کښې د توپې په ګولۍ هلاک شو. شير علي خان چې دا خبر واريدو نو واپس بلخ ته لاړو.

د دې جنګ نه درې هفتې پس يعنې په اووم اکتوبر 1867ء افضل خان په هيضه مړ شو او عظيم خان د هغۀ سکه ورور ځان امير کړو. حکومت هند هغه فوراً د کابل او غزني او د قندهار د علاقې امير تسليم کړو. ولې چونکې هرات لا هم هغه شان د شير علي خان په قبضه کښې وۀ په دې وجه حکومت هند د هرات د علاقې امير هم شير علي خان تسليم کړو.

په جنوري 1868ء کښې شير علي خان يو ځل بيا د ترکستان نه هرات طرف ته راروان شو. د هرات نه بيا هغۀ په قندهار باندې پيشقدمي وکړه او د دې کال د جون په مياشت کښې راورسيدو او بلا تکليف ئې پرې قبضه وکړه. ځکه عبدالرحمٰن خان ميمنې طرف ته په جنګ وتے وۀ. او بل هيڅوک هم د هغۀ مقابلې ته تيار نۀ وۀ. د دې نه پس شير علي خان په غزني باندې
پيشقدمي وکړه او هغه ئې هم واخستو. د جولائي په اخر اخر کښې عظيم خان د کابل نه د شير علي خان مقابلې ته راووتو او قريباً تر غزني پورې رارسيدلے وۀ چې هغۀ ته خبر وشو چې سردار اسماعيل په بالاحصار باندې د شير علي خان د طرف نه قبضه وکړه. شير علي خان د وړومبے نه دې سردار سره مصلحت کړے وۀ. چنانچه شير علي خان د عظيم خان لښکر په ځايے پريښودو او پخپله په شتاب د کابل په طرف روان شو. خلق د وړومبے نه د عظيم خان برخلاف وو هغوي د شير علي خان په ډيره خوشحالۍ استقبال وکړو او کابل ته ئې رادننه

کړو. عظیم خان او عبدالرحمٰن خان په جنوري 1869ء کښې یو ځل بیا دوباره د زورمت په مقام چې د غزنې په خوا کښې دے د مقابلې کوشش وکړو مگر دواړه ناکامیاب شول. او سخت شکست ئې وخوړو. او وزیرستان ته راوتښتیدل. د وزیرستان نه دوئ دواړه بیا د بلوچستان په لاره مشهد ته راغلل. په لاره هغوي د کاکړو قبیلې لوټ کړل اخر د ډیرو وړدو مزلونو نه پس عبدالرحمٰن خان روسي ترکستان ته ورسیدو او عظیم خان شهرود نومے یو ښار چې د مشهد او د ایران په منځکښې پروت دے پاتې شو. عظیم خان هم دې ځاے کښې لږه موده پس وفات شو. عبدالرحمٰن خان او عظیم خان سره په دې جنګونو کښې د شیر علي خان د طرف نه د هغهٔ زوے یعقوب خان او د هغهٔ ورور اسلم خان او د امین خان زوے اسماعیل په ډیرې بهادرۍ او لیاقت سره جنګیدلي وو او بیا هم د دوئ په وجه هغهٔ ټول افغانستان مسخر کړو. اوس شیر علي خان د ټول افغانستان د یو سر نه تر بله سره پورې صرف د خپلې تورې په زور او بغیر د بیروني امداد نه مالک او بادشاه شو او هر قسم خانه جنګي د څهٔ وخت دپاره رفع دفع شوې. د دې اندروني جنګونو متعلق د حکومت هند مسلمه رویه هم دغه پاتې شوې وه چې هغوي به هر هغه سړے تسلیمولو چې څوک به په یوه علاقه باندې قابض وهٔ او په دې اندروني جنګونو کښې به هغوي د هیچا پړه هم نهٔ کوله. دا پالیسي هغوي د محمد افضل خان، محمد اعظم خان او شیر علي خان درې واړو ته ښه واضحه کړې وه. چنانچه هم د دې پالیسۍ د لاندې هغوي افضل خان او اعظم خان د کابل، غزني او قندهار امیران تسلیم کړي وو. ځکه چې په دې علاقو باندې د هغوي قبضه وه او هم په دې یو وخت کښې ئې شیر علي خان د هرات امیر تسلیم کړے وهٔ ځکه چې د هرات په علاقه د هغهٔ قبضه وه.

## اتم باب

د انګریزانو د عدم مداخلت پالیسي، کیننګ وائسرائے هند ته د جان جیکب د سندهـ د پولیټیکل افسر چیټې، هنري ډیورنډ، سر جان لارنس وائسرائے هند او د هغهٔ فارورډ پالیسي، د سمرقند او بخارا په فتح کولو د روس سرحدات افغانستان سره جنګیدل، د قدامت پسندو او لبرل ډلو د انګلستان په سیاست اثر، ډسرائیلي او ګلیډ سټون، روس د خیوا ښار واخستو، د امیر شیر علي خان د لارډ میوو وائسرائے هند سره د انبالې په مقام ملاقات، لبرل حکومت د افغانستان په معاملو کښې مداخلت نهٔ کولو، د شیر علي خان په خپل مراد کښې ناکامیابي، امیر شیر علي خان او د فوځ تنظیم، د یعقوب خان بغاوت او پلار سره بیا راضي نامه، د سیستان په علاقه د ایران او افغانستان اختلاف، د انګریزانو ثالثي، او د ایران سره طرفداري، په افغانستان کښې د انګریزانو د سفیر د تقرري تجویز، شمله کانفرنس، او د کانفرنس ناکامیابي، د یعقوب خان بغاوت او د انګریزانو د افغانستان په اندروني معاملو کښې د ګوتو وهلو نیت.

وړومبے د دې نه چې مونږ د امیر شیر علي خان د عهد سلطنت وړاندیني واقعات بیان کړو مونږ له پکار دي چې د حکومت هند او د حکومت برطانیه په پالیسي او د روسي حکومت په سیاسي نظام عمل باندې خومره چې د هغې تعلق د وسط ایشیا او د افغانستان سیاسیاتو سره وۀ. د افغانستان د وړومبي لام نه تر 1869ء پورې مفصله تبصره وکړو.

د کال 42-1841ء د شکستونو خوړولو نه پس د انګریزانو پالیسي د افغانستان د اندروني سیاسیاتو متعلق بالکل د عدم مداخلت پالیسي وه چنانچه پنځلس شپاړس کالو پورې یو انګریزي ذمه وار او لوے افسر هم د دې سیاسي رویې نه اختلاف رائ ونۀ کړه. ولې هر کله چې ایران په 1856ء کښې بیا په هرات حمله وکړه او د دوست محمد خان او د فیرنګیانو په منځکښې د کال 1857ء د جنوري په میاشت کښې د دې سرحد د حفاظت دپاره د دوستي یوه مستقله عهدنامه وشوه نو بریګیډیر جنرل جیکب سي بي چې په هغه ورځو کښې د سندهـ د علاقې په سرحد باندې پولیټیکل افسر وۀ، یوه چیټي لارډ کیننګ وائسرائے هند ته ولیکله چې په هغې کښې هغۀ د نورو سیاسي معاملو نه علاوه د حکومت هند د شمال مغربي سرحداتو د حفاظت په ټوله معامله باندې مفصل بحث کړے وۀ. او بیا ئ هغۀ ته هغه ټول تجویزونه پیش کړي وو کوم چې د هغۀ په خیال کښې د دې سرحداتو د حفاظت دپاره ضروري وو. د جان جیکب د دې تجویزونو خلاصه دا وه چې :

" حکومت هند کۀ اوس سمدستي په کوئټه کښې (په هغه زمانه کښې کوئټه نۀ لا د انګریزانو په قبضه کښې وه او نۀ په هغې کښې لا څۀ فوځي چاوڼۍ وه بلکې په هغې کښې د خښتو یوه قلا وه چې د والئ بلوچستان په خاصه قبضه کښې وه او هغه د افغانستان د حکومت د اثر لاندې ګڼلې شوه) انګریزي فوځونه اچول پکار دي. د دې دپاره چې په هغې باندې د انګریزانو پوره فوځي قبضه وشي. او بیا د هغه ځاے نه د دې فوځ په ذریعه په ټول افغانستان کښې د انګریزانو مکمل اثر او پوره اقتدار پیدا شي. او هندوستان تل عمري د بیروني حملو نه محفوظ شي. علاوه د دې نه به د سمندر د نزدي والي په سبب د ټول وسط ایشیا تجارت په دې لار شروع شي."

د جنرل جیکب د تجویزونو اخري مقصد دا وۀ چې انګریزان دې ورو ورو څۀ موده پس عن تر هرات پورې لاړ شي او په هغه ځاے کښې دې انګریزان یوه لویه عظیم الشانه قلا واچوي او په هغې کښې دې قریباً شل زره فوځ دیره کړي.

د جنرل جیکب د دې تجویزونو اثر د لارډ کیننګ په زړۀ تر دې حده پورې وشو چې قریب وه چې هغۀ سمدستي په کوئټه باندې پیشقدمي کړے وے ولې د هغۀ فوځي سکتر هنري ډیورنډ د دې ټولو تجویزونو سخت مخالفت وکړو او چونکې ډیورنډ پخپله د افغانستان په وړومبي لام کښې شامل وۀ او په افغانستان کښې ئ د انګریزي فوځونو د

مشکلاتو پخپلو سترګو تماشه کړې وه له دې کبله هغهٔ لارډ کیننګ ته په دې تجویزونو باندې د عمل کولو صلاح ور نهٔ کړه. او په دې سبب هغهٔ د جان جیکب دې رائ سره اتفاق ونکړو.

د جنرل جان جیکب د دې خط نه قریباً نهٔ کاله پس چې څهٔ وخت سر جان لارنس وائسرائے هند وهٔ نو دوهٔ لویو لویو افسرانو چې د یو نوم سر هنري ګرین وهٔ او د جنرل جان جیکب جانشین وهٔ او بل سر بارټل فریر چې د بمبئ ګورنر وهٔ بیا دا رائ پیش کړه چې انګریزانو له پکار دي چې هغوي د بلوچستان او درهٔ بولان په علاقو کښې دا شان سیاسي چالونه او دخل ورکول شروع کړي چې هغوي ورو ورو او په پټه پټه عن تر کوئټې پورې ځان ورسوي او بیا د کوئټې نه هم ورپسې وروړاندې شي چې هغوي ته د مخکښې دپاره د وسط ایشیا ټول واقعات بلا واسطه معلومیدې شي. سرجان لارنس د ابتدا نه د وړاندې تلو (فارورډ پالیسي) نه سخت خلاف وهٔ هغهٔ د سر هنري ګرین د بیل بیل دلیل تردید وکړو او په اخر کښې ئ ولیکل چې کهٔ چرې هم دا شان واقعات پیښ شول چې د هندوستان په سرحد باندې زمونږ او د قطبي طاقت (روس) مقابله راغله نو ګټه او برے به هغه حکومت کوي چې چا خپل ځان د افغانستان په هغه غیر اباد غرونو کښې ونهٔ نښلولو چې کوم زمونږ او د روس په منځکښې پراتهٔ دي. او پښتانهٔ به هم هغه طاقت سره ملګري کیږي چې څوک د دې غرونو بهر وي. د وائسرائے دې رائ سره د هغه زمانې د کمانډر انچیف سر ولیم مینزفیلډ چې بیا وروستو د لارډ سینډ هوسټ په نوم باندې مشهور شو هم اتفاق وکړو. د دې خط و کتابت نه اتهٔ میاشتې پس لفټیننټ کرنل پیټر لمسډن چې ډپټي کوارټر ماسټر جنرل وهٔ بیا یو تحریري یاد داشت د وائسرائے هند په وینا باندې هغهٔ ته د هندوستان د شمال مغربي سرحداتو د حفاظت متعلق پیش کړو. په دې تحریر کښې لمسډن د دې تجویز خو مخالفت وکړو چې انګریزان دې په هرات باندې قبضه وکړي ولې هغهٔ هم دا رائ پیش کړه چې صرف درهٔ بولان او د خوجک کوتل د درو لاره دا شان لار ده چې روسي فوځونه په هغې باندې د هندوستان په طرف پیشقدمي کولے شي. پس انګریزانو له د دې غرونو نه مخکښې د افغانستان په سرحد کښې وروړاندې کیدل خو مناسب نهٔ دي او نهٔ هغوي له خپل ځان د هرات په دور دراز میدانونو او غرونو کښې نښلول پکار دي. مګر حکومت هند له دا مناسب دي چې د افغانستان په خپل قابو کښې د راوستلو یوه زبردسته کنجي یعنې په درهٔ کرم او خوست باندې هغوي سمدستي خپله قبضه وکړي. د هغهٔ دا دلیل وهٔ چې کهٔ چرې د پیوار کوتل او د شتر ګردن درې د فیرنګیانو قبضې ته راغلې نو بیا به زمونږ تسلط په کابل باندې پوره طور سره وشي. په دې به د امیر ملا هم مضبوطه شي او د هغې نه پس به بیا مونږ هغهٔ سره د هر قسم امداد کولو عهدنامه وکړو.

لکه څرنګ چې د نن ورځ د فیرنګیانو قاعده ده چې هغوي د ملک ګیرۍ خپل هر یو کار ته ډېر اخلاقي رنګ ورکوي او هر کله چې هغوي په یو کمزوري ملک باندې فوځي قبضه کول غواړي او د هغې ملک خلق هغوي غلامان کړي نو هغې له دا جواز پیدا کوي چې دې کښې د هغې ملک د خلقو بهتري او فائده ده او اخلاقاً او مذهباً دا ډېر د نیکۍ او د ثواب کار دے. دغه شان جنرل جان جیکب او لمسډن دواړو د افغانستان د ملک په یوه حصه باندې د قبضې کولو دپاره ډېر اخلاقي او مذهبي جوازونه پیدا کړل. جیکب په خپل تحریر کښې ووئیل چې هر کله زما په دې تجویزونو باندې عمل وشي نو لږه موده پس به ټول پښتانهٔ زمونږ د حکومت په فائدو او په خوږو پوهه شي. مونږ به هغوي له ډېرې روپۍ، ډېره وسله، لوے تجارت او امن و امان ورکړو او ډېر زر به هغوي زمونږ اثر او اقتدار منظور کړي. او بیا جیکب په اخر کښې لیکلي وو چې په دې تجویز باندې په عمل کولو کښې دا شان هیڅ کار نشته چې کوم مونږ د دنیا د نیکو خلقو په مخکښې یا د خدائے په وړاندې جائز نشو ثابتولے.
او لمسډن پخپل تحریر کښې وئیلي وو چې کهٔ چرې زما په تجویز عمل وشو نو مونږ به افغانستان ته دا ثابته کړو چې کهٔ چرې مونږ په افغانستان باندې یو ځل ناجائزه حمله عین د هغې د ترقۍ په وخت کښې کړې وه نو اوس به د هغې په بدل کښې مونږ د هغې د مصیبت په وخت کښې د افغانستان د مضبوطولو نه ګریز نهٔ کوؤ. مونږه به د هغې مظلومې اباد‌ۍ ته د یو مضبوط حکومت فوائد ورسوؤ. هغوي سره به پخپلو ټولو معاملو کښې د ډېرې ایماندارۍ نه کار اخلو او هغوي ته به عملاً دا ثابت کړو چې زمونږ مسیحي عقائد صرف د یو سوداګر پیشه قوم خودغرضانه خواهشات نهٔ دي بلکې د دې نه څهٔ زیات دي. دا دواړه افسران د خپل انګریزي شهنشاهیت په نشه کښې دا شان بیهوش وو او د پوهې سترګې ئې دا شان ړندې وے چې بغیر د خپل قوم نه ئې د بل هیڅ قام دپاره د ازادۍ او خودمختارۍ بې بها نعمت څهٔ د قدر قابل څیز نهٔ ګڼلو. او په دې خیال کښې مبتلا وو چې ازادي بغیر د فیرنګیانو نه د بل چا دپاره پکار نهٔ ده. او نهٔ د بل چا خوښه وي. حقیقت دا دے چې هغوي په هندوستان کښې د خپل شهنشاهیت د برقرار او محکم کولو دپاره د هیڅ قوم د خودمختارۍ او ازادۍ یا د نورو اخلاقي اصولو لحاظ نهٔ ساتلو. مګر هر څومره چې د هغوي تجویزونه ظاهره باهره د اخلاقو د انصاف او د تهذیب نه خلاف وو هم هغه هومره هغوي خپلو ناجائزو فوځي پیش قدمو اوملک ګیرۍ ته د اخلاقو او د تهذیب جامه وراغوستوله. او د دنیا په سترګو کښې ئې خاورې اچولې. مګر لارډ لارنس دې تجویزونو ته هم د هغې په اصلي رنګ کښې وکتل او د لمسډن رائې هم په هغه وجوهاتو باندې مسترد کړه په کومو کښې چې هغهٔ د جیکب تجویزونه نامنظور کړي وو. او دا ئې ولیکل چې " حکومت هند له د پیش قدمۍ دا شان یو کار هم کول پکار نهٔ دي چې د هغې په وجه د افغانستان د خلقو په زړونو کښې دا شک پیدا

شي چې زمونږ ازادي او خودمختاري د انگریزانو د لاسه په خطره کښې ده.» کوم اخلاقي او مذهبي جوازونه چې لمسلېن د خپلو تجویزونو په تائید کښې پیش کړي وو هغې سره هم لارډ لارنس اتفاق ونکړو او وې لیکل چې » د افغانستان په طرف د انگریزانو وړاندې کیدل د هغې ټولو عهدنامو د اصلي غرض او مدعا نه خلاف تلل دي چې کومې د امیر افغانستان او د فیرنگیانو په منځکښې شوي دي او کۀ چرې انگریزانو یا د قندهار په طرف او یا د کابل په طرف لږه هم پیش قدمي وکړه نو د پښتنو ټول قام به دا ضرور خیال وکړي چې دا بیا په افغانستان باندې د حملې کولو او د هغې د لاندې کولو پیش بندي ده.» د روس د حملې د مقابلې په باره کښې هغۀ دا رائ پیش کړه کۀ چرې انگریزان د روس د مجوزه حملې د مقابلې دپاره په افغانستان کښې پیش دستي وکړي نو دا ښکاره په ښکاره روس ته فائده رسول دي. ځکه چې هر څومره فیرنگیان د افغانستان په طرف پیش قدمي کوي هغه هومره به د روسیانو او انگریزانو په منځکښې لار کمیږي او انگریزان به ځان پخپله د روسیانو اصلي مرکز جنگ ته نزدې کوي. او د خپل مرکز جنگ نه به ځان لرې کوي. مگر کۀ چرې انگریزان پخپل موجوده سرحد کښې دننه مستحکم پراتۀ وي او روس په هغوي باندې د هغوي په سرحد کښې دننه حمله کول غواړي نو روس به وړومبے خو د دریائے آمو نه تر پیښور پورې د افغانستان په بنجر او غیر اباد غرونو باندې خپل فوځونه، توپخانې او نور سامان جنگ راکوزوي. او بله دا چې پښتانۀ به ضرور نه ضرور د خپل ملک د ازادۍ د برقرار ساتلو دپاره هغوي سره په ځپک ځپک زمکه جنگ کوي. د دې ټولو مشکلاتو نه پس کۀ چرې د روس فوځ د هندوستان سرحد ته راکوز هم شي نو یو خو به د هغۀ فوځونه ډیر سخت ستومانه شوے وي توپخانه به ئې کمزورې شوے وي رساله به ئې کمزورې شوے وي او بل دا چې د خپل مرکز جنگ نه به دومره لرې شوي وي چې هغوي ته د سامان جنگ په راچلولو کښې ناقابل بیان مشکلات پیښیږي. د دې قسم فوځ دپاره به انگریزي تازه دم فوځ د دریائے سندھ په کسه غاړه پروت وي او کوم ځاے کښې چې د هغوي زړۀ غواړي د جنگ انتظام به وکړي.

د دې نه پس بیا تر ډیرې مودې د فارورډ پالیسی تائید کونکو څۀ خاص تجویزونه پیش نۀ کړل. مگر د لارډ نارتهـ بروک وائسرائے هند د حکومت په اخري ورځو کښې سر بارټل فریر خپله زړه رائ دوباره هغۀ ته هم مخکښې کړه مگر د دې ذکر به مونږ په تفصیل سره په یو جدا باب کښې کوؤ.

په دې مقام کښې د دې خبرې ذکر کول هم ضروري دي چې په دې عرصه کښې د روس څۀ طرز عمل پاتې شوے وۀ. د امیر دوست محمد خان په ژوندون کښې خو هغوي سوا د دې نه چې

ایران په 1856ء کښې په هرات باندې قبضه وکړه او انګریزانو د ایران برخلاف په دې وجه جنګ وکړو او هرات ئ د هغوي نه واپس کړو. بل څۀ عملي قدم افغانستان طرف ته د راوړاندې کیدو وانۀ خستو. د دې وجه دا نۀ وه چې هغه دې طرف ته د خپلو پښو وړدولو اراده پریښې وه بلکې د روس دا خیال وۀ چې تر څو پورې په قسطنطنیه او د کوه قاف په غرونو باندې د روس قبضه ونشي تر هغې پورې په هندوستان باندې د حملې کولو دپاره د وسط ایشیا ملکونه اخستل بې فائدې دي. د دې غرض دپاره زار روس په 1854ء کښې په قسطنطنیه باندې پیشقدمي وکړه ولې ناکام شو. بیا په کال 1856ء کښې روس د کوه قاف د مسخر کولو دپاره قریباً یو نیم لک فوځ واستولو او دا ټوله علاقه ئ واخستله. دې کار روایی سره سم روس د سر دریا په خوا خوا کښې د وسط ایشیا په طرف ورو ورو خپل فوځونه راوړاندې کول. تر دې پورې چې په کال 1863ء کښې هغه د دریاب نه راپورې وتو او د قوقند په علاقه ئ حمله وکړه روس لا د قوقند په تسخیر کښې مصروف وۀ چې د روسي فوځونو او د امیر بخارا د فوځونو په منځکښې د شیمقند د ښار په قبضه باندې جګړه شوه. امیر بخارا شکست وخوړو او د ترکسنان په ښار باندې روس قبضه وکړه. د وسط ایشیا په دې ملکونو باندې د روس دې متواتر حملو بیا د انګلستان او د هندوستان په حکومتونو کښې ډیره پریشاني پیدا کړه او د هغوي په زړۀ کښې دا خیال پیدا شو چې د دې مسلسل پیش قدمو لازمي نتیجه دا ده چې روس به یوه ورځ عین د افغانستان تر حده پورې را ورسي او بیا به هغه د بخارا او د قوقند د حکومتونو په شان د افغانستان په حکومت کښې هم خپل اقتدار د قائمولو کوشش کوي. او د هغې نه پس به بیا هغه په هندوستان باندې د حملې کولو تجویز کوي. د دې واقعاتو د اثر لاندې حکومت انګلستان روس ته یو مفصل تحریر د دې مضمون ولیږلو چې د روس د دې بتدریج افغانستان طرف ته د راوړاندې کیدلو نه د هندوستان ملک په خطره کښې پریوځي له دې کبله دې روس د مزید پیش قدمی نه باز راشي. د دې تحریر په جواب کښې د روس وزیر خارجه انګریزانو ته ولیکل چې د روس مزید ملک ګیری ته نیت نۀ دے مګر چونکې د قوقند خلقو په روس کښې ډیرې ډاکې کړې دي له دې کبله د روس دپاره دا ضروري ده چې د هغوي سرزنش وکړي. دا خط و کتابت د دې دواړو حکومتونو په منځکښې په کال 1864ء کښې شوے وۀ څۀ وخت چې شیر علي خان خپلو ورونو سره په خانه جنګی کښې مصروف وۀ. څۀ موده خو روس بالکل خاموش پاتې شو مګر په کال 1865ء کښې هغوي امیر بخارا سره بیا جنګ وچیړلو او د دې کال د جون په میاشت کښې ئ تاشقند فتح کړو. د دې نه پس روسیانو په کال 1866ء کښې په خوجند باندې قبضه وکړه. او هم په دې کال کښې ئ د قوقند د حکومت نیمه علاقه په خپل سلطنت کښې شامله کړه او په باقي نیم باندې ئ خدا یار خان نومے یو خان په طور د خپل یو باجګزار

مقرر کړو. لږه موده پس یعنې په جولائي 1867ء کښې د قوقند باقي نیمه علاقه هم روس پخپل سلطنت کښې شامله کړه او په دې طریقه ئې خپل حدود د شاه بخارا حدودو سره وجنګول. د دې ټولې علاقې وائسرائے زار روس جنرل کافمین نومے یو فوځي افسر مقرر کړو. دې وائسرائے د قوقند د مقبوضه ملک د حفاظت په بهانه د سمرقند په خوا کښې د یوې زبردستې قلا د جوړولو بندوبست وکړو. شاه بخارا ته اوس د خپل حکومت د ازادۍ سخته خطره پیدا شوه او د دې قلا د جوړولو ئې سخت مخالفت وکړو. نتیجه دا شوه چې د روس او بخارا جنګ وشو او شاه بخارا شکست وخوړو. روسي فوځونو سمدستي په سمرقند باندې حمله وکړه او چونکې د بخارا د ښار د اوبو ګزاره په سمرقند باندې وه له دې کبله شاه بخارا مجبور شو او ځان ئې د روس باجګزار تسلیم کړو. دا واقعات په کال 1868-69ء کښې پیښ شول. او اخر کار د روس او د افغانستان حدود پخپلو کښې وجنګیدل. دا هم هغه کال وُ چې امیر شیر علي خان د افغانستان ټول اندروني بغاوتونه فرو کړل او خپل ځان ئې د ټول افغانستان واحد مالک کړو. د افغانستان په سرحد باندې د روس رارسیدلو نهٔ صرف د انګلستان او د حکومت هند په زړهٔ کښې خوف او خطره پیدا کړه بلکې شیر علي خان سره هم د خپل ملک د ازادۍ ویره پیدا شوه. او دا ئې په زړهٔ کښې راغلل چې هسې نه چې روس او د انګریزانو د رقابت په سبب افغانستان ته نقصان ورسي.

د روس د دې متواتر پیش قدمو متعلق په دې زمانه کښې په انګلستان کښې دوه سیاسي ډلې وې او چونکې د دې دواړو ډلو د سیاسي پالیسۍ لوے اثر د افغانستان په آئنده تاریخ باندې پریوتې دے له دې کبله مناسب دي چې د دې دواړو ډلو لږ په تفصیل سره ذکر وشي. د یوې ډلې دا خیال وُ چې د روس اصلي منشا د دې پیش قدمو نه دا ده چې هغه د قسطنطنیه نه تر کلکتې پورې د دې ټولو ملکونو حکمران شي. د دې فریق دا خیال وُ چې هم د دې نظام عمل د لاندې روس د ترکو ایران او د وسط ایشیا په ملکونو باندې ګوابښېږي. تر دې پورې چې بالاخر به هغوي په هندوستان باندې حمله وکړي او دا ټول ممالک به پخپلو مقبوضاتو کښې شامل کړي. چنانچه د دې ډلې پالیسي دا وه چې انګریزان دې په دې ټول محاذ باندې د روس د هرې پیش قدمۍ مقابله وکړي. او نهٔ دې هغه په وسط ایشیا کښې او نهٔ په دې نورو ملکونو کښې خپل اقتدار قائمولو ته پریږدي.

د بلې سیاسي ډلې دا خیال وُ چې د هندوستان د حفاظت دپاره دې روس سره دومره سمجهوته وشي چې د فیرنګیانو او د روس د مقبوضاتو حدود تردې حده پورې نهٔ نزدې کیږي چې بیا روس په اسانتیا سره په هندوستان باندې د حملې کولو قابل شي. د دې ډلې پالیسي دا وه چې په ایشیا کښې په هر ځاے او په هر مقام د روس مقابله کول ضروري نهٔ دي. مګر کهٔ چرې روس د خپل سلطنت حدود د افغانستان تر پولې پورې راورسول نو د هغې نه

پس بیا په افغانستان کښې د روس یو قدم راوړاندې کیدل په هندوستان کښې د انګریزانو د حکومت دپاره د خطرې نه ډک دي. او په دې صورت کښې به فیرنګیان روس سره ضرور جنګ کوي.

د ورومبی رائې خاوندان هغه ډله وه چې چا ته به ئې قدامت پسند یا کنزرویټیو Conservativeوئیل او د ډ هغوي مشر یو یهودي النسل لارډ بیکنزفیلډ وه او د هغهٔ اصلي نوم ډسریلي وهٔ . او د دویمې رائې خاوندان هغه ډله وه چې چا ته به ئې لبرل Librels یعني ازاد خیال وئیل. او د هغوي مشر مشهور او معروف سیاستدان مسټر ګیلډسټون وهٔ. چونکې انګلستان کښې حکومت د سیاسي ډلو په ذریعه کیږي د دې کبله هر کله چې روس به څهٔ نوې پیش قدمي وکړه نو کومه ډله چې به برسرحکومت وه هغې به د خپلې پالیسی مطابق د هغې متعلق کارروائي کوله.

څهٔ وخت چې روس د حکومت بخارا په باجګزار کولو کښې کامیاب شو او د روس او د افغانستان حدونه وجنګیدل نو بیا د فارورډ پالیسی خلقو په انګریزي سیاستدانانو کښې سر راوچت کړو. او دا رائې پیش کړه چې د روس د نورې پیش قدمی د تدارک دپاره دا ضروري ده چې انګریزان دې په هرات او په قندهار خو پخپله قبضه وکړي او په کابل باندې دې یو داسې سړے حکمران شي چې د هغهٔ خارجه پالیسي (نظام سیاسي) بالکل د انګریزانو په لاس کښې وي بلکې انګریزي فوځي افسران دې هر وخت د روس او د افغانستان په سرحد باندې د دې غرض دپاره موجود وي چې د روس د فوځي کارروایو نه هغه افسران پخپله ځان خبروي. او کهٔ چرې د روس او افغانستان په منځکښې په حدبندی څهٔ جګړه پیښیږي نو چې هغه هم وقتاً فوقتاً خوروي. د دې دپاره چې روس له په افغانستان باندې د حملې کولو څهٔ بهانه په لاس رانشي. د دې برخلاف د دویم ټولي رائې بدستور دا وه چې حکومت هند له د خپل موجوده سرحد نه وړاندې کیدل پکار نهٔ دي ځکه چې د افغانستان په ملک باندې یوه لیشت وړاندې کیدل به د افغانستان ټول خلق د فیرنګیانو بیا سخت برخلاف کړي.

په کال 1869ء کښې حکومت برطانیه یو ځل بیا د وزیر خارجه لارډ کلیرینډن په ذریعه حکومت روس ته د دې پیش قدمو متعلق دا تجویز پیش کړو چې روس او انګریزان دې دواړه په اتفاق سره د افغانستان ملک د خپل خپل سیاسي اقتدار زیر اثر کولو نه بهر وساتي چې نهٔ روس نور د دې ملک په طرف راوړاندې کیږي او نهٔ فیرنګیان د خپل سرحد نه مخکښې کیږي. روس په کاغذ خو دا تجویزونه فوراً منظور کړل مګر چونکې په دې ورځو کښې په حکومت هند کښې یوه با اثره ډله د فارورډ پالیسی ملګرې وه هغوي د افغانستان وزیر خارجه ته دا رائې ورکړه چې افغانستان دې د انګریزي اثر نه نهٔ بهر کیږي. اخر د ډیر

خط و کتابت نه پس روس دا خبره منظوره کړه چې د افغانستان قطبي سرحد دې دریائے آمو مقرر شي. او د دې نه وړاندې به هغه د وړاندې کیدو نیت نۀ کوي. مګر د دې لوظ نه لږه موده پس روس د خیوا د تسخیر قصد وکړو. انګریزانو بیا په دې اعتراض وکړو. روس د پیش قدمی نه انکار وکړو مګر سره د دې انکار نه روسي فوځونه د خیوا په علاقه کښې ورننوتل او د دریائے آمو د ښي غاړې ټوله علاقه ئ خپل سلطنت سره شامله کړه. په لسم جون 1873ء د خیوا ښار هم روسیانو واخستو. او علاوه د یو لوے تاوان جنګ نه ئ د خیوا خان خپل باجګزار کړو.

اوس مونږ له د دې ذکر کول پکار دي چې په شیر علي خان باندې د روس او د افغانستان د حدودو د جنګیدو څۀ اثر وشو؟ او د روس د دې پیش قدمو نه د افغانستان د ساتلو دپاره هغۀ څۀ تدبیرونه اختیار کړل. هغۀ د دې متعلق فوراً په زړۀ کښې دا فیصله وکړه چې ماله انګریزانو سره دغه شان د دوستی عهدوپیمان کول پکار دي. لکه چې څرنګ دوست محمد خان زما پلار کړے وۀ. چنانچه څۀ وخت چې هغه د کال 1868ء په مني کښې د افغانستان بیا مسلم امیر شو نو هغۀ سمدستي سر جان لارنس وائسرائے هند ته خبر وکړو چې د الله تعالیٰ په فضل او د هغۀ په امداد سره زما جنډه په خیر خیریت سره د کابل دارالسطنت ته راورسیده. سر جان لارنس لکه چې څرنګ وړومبے ذکر شوے دے د خوش قسمتی نه د فارورډ پالیسی خلاف وۀ. د هغۀ مقصد صرف دومره وۀ چې په افغانستان کښې دې اندروني امن و امان وي او د هغې امیر دې د انګریزانو برخلاف څۀ دا شان جارحانه کارروائي نۀ کوي چې د هغې په سبب د هندوستان په حفاظت کښې خلل پریوځي. د دې نه علاوه نۀ خو د هغۀ د افغانستان په اندروني معاملاتو کښې د دخل ورکولو اراده وه او نۀ د هغۀ نیت د افغانستان نه ازادي اخستل وو. هغۀ ته د 42-41-1840ء واقعات په ښۀ شان سره یاد وو په افغانستان کښې د اندروني فسادونو نه هغه په دې وجه برخلاف وۀ چې کمزورے او د فسادونو نه ډک افغانستان به همیش روس ته د پیش قدمی بهانه په لاس ورکوي. درحقیقت د سر جان لارنس دا پالیسي هم د فیرنګیانو دپاره او هم د پښتنو دپاره ډیره فائده منه وه. او کۀ چرې په هغې باندې مسلسل عمل شوے وے نو د افغانستان دویم جنګ به هیچرې هم نۀ وۀ پیښ شوے. چنانچه د دې خپلې پالیسی په مطابق سر جان لارنس په دویم اکتوبر 1868ء امیر شیر علي خان ته د هغۀ د خط په جواب کښې د هغۀ په دوباره امیر کیدو مبارکباد ورکړو او په دې خط کښې ئ هغۀ ته ولیکل چې خپلو شکست خورده دشمنانو سره د نرمی سلوک وکړه او مخکښې ئ ورته نور دا ولیکل چې په حیثیت د وائسرائے زۀ نۀ صرف د هغې دوستی او د ښو تعلقاتو د قائم ساتلو دپاره تیار یم چې کوم چې د دوست محمد خان او د حکومت هند په منځکښې موجود وو. بلکې تر کومه چې ممکن وي نو زۀ به هغه زاړۀ تعلقات نور هم مضبوط

کړم. د دې خط د اخري الفاظو د ربښتيا کولو دپاره سر جان لارنس په يويشتم دسمبر د پنجاب لفټيننټ ګورنر ته حکم وکړو چې تۀ شپږ لکه روپۍ فوراً شير علي خان ته ورکړه. د دې نه علاوه سر جان لارنس د انګلستان وزير هند ته وليکل چې مونږ ته دې د دې خبرې اجازت راکړې شي چې مونږ د خپلې خوښې مطابق د افغانستان امير له اسحله او د نغدو روپو امداد وقتاً فوقتاً د آئنده دپاره ورکوؤ. دې کښې شک نشته چې د سر جان لارنس دا مالي امداد امير شير علي خان له ورکول د افغانستان په اندروني معاملاتو کښې د دخل ورکولو برابر وو. ځکه چې کۀ چرې دا مالي امداد د دې نه وړومبے محمد افضل خان يا اعظم خان ته ورکړې شوے وے نو شايد چې شير علي خان هډو امير شوے نۀ وے مګر چونکې د دې خانه جنګو په سبب اوس افغانستان بيحده ډير غريب شوے وۀ او فيرنګيانو سره دا ويره پيدا شوې وه چې کۀ د افغانستان د کمزورۍ د بدامنۍ او د خانه جنګو هم دا حال وي نو ډيره ممکنه ده چې روس د هغې نه فائده وچته کړي او هغه يا د يوې پرې او يا د بلې پرې ځان ملګرے کړي او د افغانستان په اندروني معاملاتو کښې دخل ورکول شروع کړي. پس حکومت هند دا فيصله وکړه چې چونکې اوس امير شير علي خان قرار واقعي د ټول افغانستان فرمانروا دے نو پکار دي چې مونږ هغه پخپل حکومت کښې ښۀ مضبوط کړو او د دې غرض دپاره هغۀ له مالي امداد ورکړو. امير شير علي خان ته د دې مالي امداد د قبلولو ټولې خطرې او نتيجې په مخکښې وے. هغۀ ته معلومه وه چې هيڅ حکومت بل حکومت له صرف د خدائے او د خدائے د مخلوق د فائدې دپاره د روپو امداد نۀ ورکوي بلکې د دې په غرض به يوه ورځ ضرور انګريزان مانه څۀ لوے او اهم مطالبات کوي. مګر سره د دې علم نه چونکې د مسلسل خانه جنګو په سبب د امير شيير علي خان خزانه بالکل خالي وه او هغۀ سره بدستور د نورې بدامنۍ او بغاوتونو ويره وه له دې کبله هغۀ مجبوراً د سر جان لارنس دا د شپږو لکو روپو هديه منظوره کړه. دې کښې شک نشته چې دا وخت خو وائسرائے هند د دې روپو په عوض کښې سوائ انګريزانو سره د دوستۍ ساتلو نه بل څۀ قيد او پابندي په شير علي خان کښينښوده مګر د سر جان لارنس نه پس بيا لارډ ليټن د دې قسم مالي امدادونو په بنا د افغانستان په بيروني پاليسۍ کښې د هر قسم دخل ورکول شروع کړل. او هر کله چې شير علي خان د هغې مخالفت او مقابله وکړه نو د افغانستان دويم لام ئ نتيجه شوه.

د دې روپو د وصولولو نه لږې ورځي پس امير شير علي خان مسټر آر ايچ ډيويز لفټيننټ ګورنر پنجاب ته وليکل چې د انګريزانو سره د خپلې زړې دوستۍ د مضبوطولو دپاره وائسرائے هند سره ذاتي ملاقات کول غواړم. سر جان لارنس هغۀ ته په جواب کښې په نهمه جنورۍ 1869ء کښې وليکل چې زۀ اوس د هندوستان نه تلونکے يم او په کومو اصولو چې حکومت هند د افغانستان په معاملاتو کښې دا وخت روان دے هغه اصول انګلستان د

ملکي معظمې حکومت ته هم منظوّر دي او تر څو پورې چې تهٔ عملاً حکومت برطانیه سره اتحاد او دوستي ساتې تر هغه پورې به په دې اصولو کښې د هیڅ قسم تبدیلي نهٔ راځي او نهٔ به د افغانستان په اندروني معاملاتو کښې حکومت هند څهٔ دخل ورکوي. نور هغهٔ امیر صاحب ته دا ولیکل چې "تا سره زمونږ د دوستۍ غټ ثبوت دا دے چې شپږ لکه روپۍ به نورې په دریو میاشتو کښې دننه دننه تاته درکړې شي او د هغې په عوض کښې حکومت هند تاته سوا د دوستۍ او د خوږو تعلقاتو نه بل هیڅ څیز نهٔ غواړي."

د سر جان لارنس نه پس لارډ میو د هندوستان ګورنر جنرل شو هغهٔ په دولسمه جنورۍ 1869ء کلکتې ته راورسیدو او سمدستي ئې شیر علي خان سره د ملاقات کولو دپاره د انبالې مقام او اوویشتم مارچ مقرر کړو. شیر علي خان په لسمه فرورۍ د کابل نه راروان شو او یعقوب خان خپل مشر زوے ئې د ملک اندروني انتظام دپاره خپل جانشین کړو. په دریم مارچ هغه پیښور ته او په پنځویشتم مارچ انبالې ته راورسیدو. په اوویشتم مارچ وائسراے هند هم انبالې ته راورسیدو. او هم په دغه ورځ لارډ میو په عام دربار کښې امیر شیر علي خان ته د ملکهٔ وکټوریه د طرف نه هرکلے ووئیلو. په نهٔ ویشتم تاریخ شیر علي خان هم دربار وکړو او لارډ میو پکښې شامل شو. د دې نه پس شیر علي خان او د لارډ میو په منځکښې سیاسي خبرې اترې شروع شوې. امیر صاحب سره په دې موقع د هغهٔ قابل او مدبر صدر اعظم سید نور محمد شاه شامل وهٔ. او لارډ میو سره مسټر ډیویز د پنجاب لفټیننټ ګورنر او مسټر سیټن کر کاتب خارجیه شامل وو. کپتان ګرے په طور د مترجم مقرر وهٔ امیر شیر علي خان دې ملاقات له په داسې وخت کښې راغلے وهٔ چې د هغهٔ د سلطنت په اندروني معاملاتو کښې لا پوره قلارے نهٔ وهٔ راغلے. لږه موده شوې وه چې د هغهٔ برخلاف عبدالرحمٰن خان د ترکستان د طرف نه بیا راوچت شوے وهٔ. او هغه ئې په مشکله دفع کړے وهٔ. هغهٔ سره د نورو بغاوتونو لا هغه شان خطره وه او دا شان معلومیده چې د هغهٔ حکومت په ډیر کمزورې بنیادونو ولاړ دے له دې کبله هغهٔ په دې ملاقات کښې د دې خبرې کوشش کولو چې ماته د فیرنګیانو نه ډیر مالي او فوځي امداد په ګوتو راشي. هم د دې امداد په طمع هغهٔ خپل ملک په بدامنۍ کښې پریښودو او انبالې ته ئې دا دوروددراز سفر اختیار کړو. د هغهٔ دا امید وهٔ چې انګریزان به ما سره جارحانه او مدافعانه د دوستۍ دا شان معاهده وکړي چې زهٔ به هغوي له د تکلیف په وخت کښې مدد ورکوم او هغوي به ماله زما د تکلیف په وخت کښې مدد راکوي. او غوټه پریکړې وعده به ما سره فیرنګیان وکړي. چې د روس د پیش قدمو خلاف به هغوي ماله فوځي امداد راکوي. دا هم د هغهٔ کوشش وهٔ چې د اندورني بغاوتونو متعلق دې انګریزان ما له زما د ورونو او د ورارهٔ یعنې عبدالرحمٰن خان برخلاف د امداد کولو اقرار وکړي. او کومه سلسله د وراثت چې زهٔ د تخت نشینۍ دپاره مقرروم هغه

پـه انګـريـزانـو تسليـم کـړم دا خبـرې وې چې هغـهٔ ځان سره پـه زړهٔ کښې تړلې وې. او د انګـريزانو نه ئ د هغې متعلق پاخهٔ اقرارونه اخستل غوښتل. مګر څهٔ وخت چې لارډ ميو او د هغـهٔ مشيـرانـو سره په دې معاملاتو په تفصيل سره خبرې وشوې نو هغهٔ ته دا معلومه شوه چې انګـريـزان پـه دې ټولو خبرو کښې د يوې منلو ته هم تيار نهٔ وو. اخر کار شير علي خان لارډ ميو تـه ووئيـل چې کوم کوم امداد حکومت هند ما سره په دې معاملاتو کښې کولے شي هغه دې وائسرائے ماته په تحرير کښې راولي چنانچه په يو ديرشم مارچ لارډ ميو هغهٔ ته يوه مجمل خـط دا شان وليکلو چې په هغې د شير علي خان هيڅ تسلي ونشوه. د بيروني خطرو برخلاف د امـداد ورکـولـو متعلـق لارډ ميـو هغهٔ ته وليکل چې زهٔ به وقتاً فوقتاً د واقعاتو مطابق دا شان امـداد ستـا حـکـومـت تـه ورکوم چې تهٔ پخپل ملک کښې په عدل و انصاف سره د حکومت کـولـو قابل شې او کوم اعزازات او درجې چې تاته حاصلې دي او تا په جائز طور باندې خپلې کـړې دي تهٔ خپل اولاد ته په وراثت کښې د پريښودو قابل شوې. او د دې غرض د حاصلولو دپـاره زهٔ تـاتـه د دې خبـرې دعوت درکوم چې تهٔ حکومت هند او د هغې ټولو افسرانو سره د خپـل حکومت په معاملو باندې خط و کتابت کولے شې. د خپلو ورونو او د ورارهٔ برخلاف د امـداد متعلق لارډ ميو شير علي خان ته په ډير مشکوک الفاظو کښې وليکل چې مونږ ستا په کـاميابى او ستا د حکومت په مضبوط والي او په هغې کښې په امن و امان ډير خوشحاله يو او دا اقـرار کـوؤ چې مـونږ به ستا د وريرونو او د ورونړو هر هغه کار ته چې په کوم باندې ستا په حکومت کښې خلل پريوځي سخت د ناراضګۍ په نظر سره ګورو. په دې ځاے کښې دا وئيل مـنـاسـب دي چې پـه دې ورځـو کـښې پـه انګلستان کښې د مسټر ګليډسټون سياسي ډله بـرسـرحـکـومـت وه. او چونکې هغوي د افغانستان په کورونو معاملو کښې ګوتې نهٔ وهلې له دې کـبـلـه هغوي لارډ ميو ته ليکلي وو چې د حکومت هند د طرف نه شير علي خان سره هيڅ څهٔ داسې قسـم وعـده ونـکـړې چې د هغې په وجه انګريزان بيا د افغانستان په کورنو معاملو کښې پـه دخـل ورکـولـو مـجبـور شي هـم دغه وجه وه چې لارډ ميو شير علي خان سره نهٔ د اندروني او نهٔ د بيروني معاملاتو متعلق د څهٔ امداد قطعي وعده وکړه. بلکې په ډير مبهم الفاظو کښې هـغـهٔ د شيـر عـلـي خان د خوشحالولو کوشش وکړو. د مسټر ګليډسټون حکومت د افغانستان 41-40-1839ء د واقعـاتـو نه او د شاه شجاع په مرسته باندې د ودريدو نه دومره متـاثـر شـوے وهٔ چـې هـر کله لارډ ميو وزير هند ډيوک آف آرګل ته يو ديرشم مارچ د چيټې مضمون ورليږلو نو وزير هند په جواب کښې وائسرائے ته وليکل چې په کومو الفاظو کښې تا دا خط ليکلے دے په هغې کښې بعضې الفاظ داسې استعمال شوي دي چې دا ممکن ده چې د هغې په بنا يوه ورځ شير علي خان زمونږ نه د خپلو کورنو معاملاتو کښې د امداد طمع وکړي. لارډ ميـو وزير هند ته د دې په جواب کښې وليکل چې ما په زباني خبرو اترو کښې شير علي

خـان پـه دې خبره ښهٔ پوهه کړې دے چې کهٔ چرې ستا په ملک کښې ستا ترېورانو د بغاوت جنـډه وچتـه کـړه نـو حـکـومت هند ستا د مخالفينو برخلاف هيچرې هم فوځي کارروائي نهٔ کـوي مـا دا خبـره هـم هغهٔ ته ښه واضحه کړې ده چې مونږ به ستا صرف هغه وارثان تسليموؤ چې کـوم پـه واقـع کښې هغه وخت د افغانستان په ملک باندې برسرحکومت وي. د دې نه عـلاوه مـا شيـر عـلـي خان سره د څهٔ خاص رقم د ادا کولو اقرار نهٔ دے کړے. د دې خط چې کـوم هغهٔ په يو ديرشم مارچ شير علي خان ته ليکلے وهٔ خلاصه مطلب لارډ ميو وزير هند ته په دې الفاظو کښې ليکلې ده :

"What the Amir`is not to have:- No treaty; no fixed subsidy; no European troops, officers or residents, no dynastic pledges.

What he is to have :- Warm countenance and support, discouragement of his rivals; such material assistance as we may consider obsolutely necessary for his immediate wants, and constant friendly communication through our commissioner at Peshawar and our native agent in Afghanistan; he on his part undertaking to do all he can to maintain peace on our frontiers, and to comply with all our wishes in the matter of trade."

(Afghanistan No.1.1878 P-95)

پـه دې ځـاے کښې دا وئيل مناسب دي چې لارډ ميو صرف د خپلې چيټۍ د مضمون د مـضبـوطـولـو دپاره او د وزير هند د خوشحالولو دپاره د دې خبرې ذکر کړے دے چې امير شيـر عـلـي خـان له به نهٔ خو مونږ يورپين فوځونه يا افسران او نهٔ ريزيډنټ ورکوؤ. په حقيقت کښـې خـو شيـر عـلـي خـان د دې هډو مطالبه نهٔ وه کړې چې ماله دې ديسي يا يورپين فوځ د امـداد دپاره راکړې شي او نهٔ هغهٔ په افغانستان کښې د يورپين افسرانو يا د ريزيډنټ مقررولو سـوال کـړے وهٔ. مـګـر بهـرصـورت د دې برني انګريزي خط نه دا قطعي طور ثابتيږي چې د انـګريزانو او د شير علي خان په منځکښې دا قطعي فيصله شوې وه چې انګريزان به افغانستان تـه نـهٔ خپـل فـوځـونـه، نـهٔ خپل افسران او نهٔ څوک ريزيډنټ استوي چنانچه په يوه بله چيټۍ کښـې لارډ ميو وزير هند ته صاف ليکلي دي چې ما شير علي خان سره دا اقرار کړے دے چې هيڅ يورپين افسران به ستا په ښارونو کښې په طور د ريزيډنټانو نهٔ مقرريږي. او بيا په بله يوه چيټـۍ کښـې لارډ ميو ليکلي دي چې کوم شرطونه مونږ شير علي خان ته ورکړي دي هغه دا دي چې مـونـږ بـه ستـاسو په معامله کښې هيڅ دخل نهٔ ورکوؤ او ستا د رضا نه خلاف به مونږ يـورپيـن افسـران ستا ملک ته نهٔ درليږو. په يوه بله چيټۍ کښې چې کومه لارډ ميو په څلورم اپـريـل ليـکـلې وه او په هغې کښې هغهٔ شير علي خان سره د اول او دويم اپريل د خبرو حواله وُرکـړې وه هـغـهٔ دا ليـکـلـي وُو چې شيـر عـلـي خـان او د هغهٔ وزير نور محمد شاه د يورپين ايجنټانو د تقررى سخت برخلاف دي.

خلاصه د انبالې د کانفرنس د خبرو اترو دا ده چې اګر چې شیر علي خان له خاص فائده په لاس رانغله مګر کومه عهدنامه چې سر جان لارنس دوست محمد خان سره کړې وه لارډ میو د هغې معاهدې تائید مزید وکړو ولې انګریزانو هغهٔ سره سوا د دوستۍ او د ښو تعلقاتو د ساتلو نه نور څهٔ د امداد قطعي اقرارونه ونهٔ کړل.

شیر علي خان چې د انبالې د کانفرنس نه واپس شو نو سمدستي د خپل ملک د فوځي او مالي اصلاحاتو په کار کښې مصروف شو. هغه پوهه شوے وهٔ چې تر څو پورې د یو قوم خپل زور د روپو، د فوځ او د قومي تنظیم نهٔ وي نو نور قومونه نهٔ هغوي سره همدردي کوي او نهٔ د هغوي د دوستۍ او د اتحاد د حاصلولو کوشش کوي. د دې نظام عمل په سلسله کښې هغهٔ د پښتنو د رواج او د عام عادت برخلاف خپلو ډیرو دشمنانو سره ځان پخلا کړو او په لږه موده کښې ئې نهٔ صرف خپل فوځي طاقت له ډیره ترقي ورکړه بلکې په ټول افغانستان کښې ئې د یو ګوټ نه تر بل ګوټ پورې بالکل امن و امان قائم کړو. د فوځ د وسیدو دپاره هغهٔ د یو عظیم الشاني چاونۍ د جوړولو تجویز وکړو. او بیشانه ډیرې روپۍ ئې د هغې په محفوظ کولو او په هغې کښې په بارکونو جوړولو ولګولې. د دې چاونۍ نوم هغهٔ شیر پور کښېښودو او د پنځو شپږو کالو د محنت نه پس دا چاونۍ لا هم هغه شان نامکمله وه چې انګریزانو په هغهٔ باندې ډیر په ناجائزه طریقه لام جوړ کړو. د هغهٔ فوځي انتظام به د لاندیني تفصیلاتو نه ښهٔ واضح شي.

☆ هغهٔ دوه اویا پلټنې د پیادوؤ برتي کړې چې په شمار کښې پنځوس زره کسان وو.

☆ پنځویشت رجمټې د رسالې وې چې د هغې شمار لس زره وهٔ.

☆ د دې نه علاوه هغهٔ څهٔ بې قاعدې د ملیشیا په شکل کښې فوځیان هم تیار کړي وو. چې هغوي له به ئې څهٔ معمولي شان تنخواه ورکوله او څهٔ خاص قسم حقوق هم هغوي ته حاصل وو. په دې بې قاعدې فوځ کښې پیاده کسان شپیتهٔ زره وو او سوارهٔ پنځهٔ نوي زره وو. د دې فوځونو نه علاوه هغهٔ سره قریباً درې سوه او نههٔ اویا غټې او وړې توپې وے او قریباً پنځوس زره ټوپکې وے چې په هغې کښې څهٔ د انګریزي او یورپین ساخت وے. او څهٔ د وطن جوړې وے. د وسلې د جوړولو دپاره هغهٔ په بالاحصار کښې اسلحه خانې جوړې کړې وے چې په هغې کښې به علاوه ذ ټوپکو او تماچو نه غټې او وړې توپې هم جوړیدې. د باقاعده فوځ د وردو دپاره هغهٔ لویې لویې درزي خانې جوړې کړې او هر سپاهي له به دوه کاله پس نوې وردي ورکیدے شوه. د هغهٔ په فوځ کښې چې کوم کمے وهٔ نو هغه صرف دا وهٔ چې په یو لوے جنګ کښې د پښتنو غوندې بهادر فوځ د جنګولو دپاره قابل، تعلیم یافته او د جنګ د فن ماهر افسران نهٔ وو اګر چې د فوځ وردي، وسله، تنخواه ګانې او توپخانې ټول په اعلیٰ پیمانه باندې وو مګر د دې فوځ د منظم کولو دپاره او د فنون جنګ په مطابق د هغوي

پـه مـيـدان جـنـگ کښې د جنګولو دپاره د لائق لائق سالارانو او افسرانو ډير سخت ضرورت وۀ هم دغه وجه وه چې د افغانستان په دويم لام کښې د شير علي خان د باقاعده فوځ په نسبت د اولس خلقو په ډيرې بهادرۍ سره جنګ کړے وۀ مګر په کومې جانفشانۍ او په کوم لياقت چې امير شيـر عـلي خان د خپل فوځ منظم کولو طرف ته توجه کړې وه د بارکزو په خاندان کښې د هغې نـظير نشي موندې. د افغانستان د کل آمدنۍ څلورمه برخه به هغۀ په خپل فوځ لـګـوله او هر وخت به هغۀ د خپل فوځ په تيارولو کښې دا شان لګيا وۀ لکه چې نن سبا په هغۀ بـانـدې يو زورور دشمن حمله کونکے دے. په جولائي 1869ء کښې اسحاق خان د عظيم خان زوي د ترکمانانو د يو لښکر سره د دريائے آمو نه راپورې وتو او په اقشي باندې ئې حمله وکـړه د شيـر عـلـي خـان جزائلچيانو د ښار ميخزين ته اور ورته کړو او سره د رسالې اسحاق خـان سـره يو ځاے شول. اسحاق خان بيا په بلخ باندې پيش قدمي وکړه ولې مير عالم خان د افغان ترکستان ګورنر هغۀ له شکست ورکړو او هغه بيا واپس د دريائے آمو نه پورې وتو.

د شيـر عـلـي خـان بيـرونـي مـلـکـونو سره د تعلق ساتلو پاليسي هم هغه وه چې کومه دوسـت مـحـمـد خـان ساتلې وه او هغه دا وه چې هغۀ سيوا د انګريزانو نه بل يو بيروني طاقت سـره هـم د فيرنګيانو د مرضۍ نه بغير نۀ دوستي جوړوله او نۀ دشمني او هغۀ په دې ټوله موده کښې يو کار هم دا شان کول نۀ غوښتل. چې د هغې په وجه د فيرنګيانو په زړۀ کښې دا شک پيـدا شي چې ګني شير علي خان د هغوي دوست نۀ دے چنانچه څۀ وخت چې جنرل کافمين ګـورنـر جنرل د وسط ايشيا، په کال 1870ء کښې شيـر عـلـي خان ته يو دوستانه خط د دې مضمون راوليږلو چې اګر چې ستا ورارۀ عبدالرحمٰن خان مونږ سره په روسي ترکستان کښې شـړونکے دے او هغه اوس په تاشقند کښې وسيږي مګر زۀ تاته د دې تسلي درکوم چې د هغۀ پـه وجه به روس د افغانستان په اندروني معاملاتو کښې ګوتې نۀ وهي. ځکه چې د انګريزانو د حـفـاظـت د لاندې ئې او د زار روس او د حکومت برطانيه پخپلو کښې دوستي او جوړه ده او چـونـکې تۀ تراوسه پورې د بخارا په ملک باندې نۀ ئې بلوسيدلې نو تا روس ته د خفګان هيڅ مـوقـع پـه لاس نۀ ده ورکړې او مونږ پخپلو کښې سره دوستان يو. نو دا چيټۍ سمدستي شير عـلـي خـان د انګريزانو وکيل مقيم کابل ته ورکړه او هغۀ ته ئې ووئيل چې تۀ دا خط وائسراے هند ته وليږه او کوم قسم جواب چې د دې خط وائسراے هند مناسب ګڼي هغه شان جواب به بيـا زۀ جـنـرل کافمين ته وليږم. شير علي خان ته هم د کافمين د دې خط نه قسماقسم شکونه پـه زړۀ کښې پيـدا شول او د هغۀ دا ګمان راغلو چې اخر به روسيان هم د دې خبرې کوشش کـوي چې ما د فيرنګيانو او د خپل ځان تر منځ په سياسي جګړو کښې راواچوي. چنانچه هغۀ د خپـل زړۀ دا شـکـونه انګريزي وکيل ته ټول ښکاره کړل او هغۀ ته ئې ووئيل چې د کافمين د دې فـقـرې نه څۀ مطلب دے. چې "چونکې ما هغۀ له د خفګان څۀ موقع په لاس نۀ ده ورکړې

نو دې دپاره هغوي ما سره د دوستی تعلقات قائمول غواړي". لارډ ميو شير علي خان ته د دې سوالونو په جواب کښې په شلیریشتم جون 1870ء یو وړد خط ولیکلو او ورته ئ ولیکل چې د جنرل کافمین د دې خط نه پکار نهٔ دي چې ستا په زړهٔ کښې څهٔ بدګماني يا شکونه پيدا شي. د جنرل موصوف د خط مطلب دا دے چې تر څو پورې ستا تعلقات فيرنګيانو سره ښهٔ او خوشګوار دي او لکه چې څهٔ رنګ د انبالې د کانفرنس نه تر دې وخته پورې راغلي دي تر هغه وخته پورې به نهٔ روس او نهٔ د هغهٔ باجګزار رياستونه په تا باندې بلوسيږي. په اخر کښې بيا لارډ ميو امير شير علي خان ته د جنرل کافمين د خط مناسب جواب ليکلے وهٔ. امير شير علي خان د لارډ ميو د جواب په مطابق کافمين ته جواب وليږلو او د هغې نه پس چې هر څومره خطونه چې د کافمين د طرف نه هغهٔ ته راتلل نو هغهٔ به دا ټول خطونه سره د خپلو جوابونو د نقلونو ګورنر جنرل هند ته استول. حکومت هند ته هغهٔ بيا دا هم وليکل چې کهٔ چرې د روس ګورنر جنرل د طرف نه په دې خطونو کښې څهٔ څيز قابل اعتراض وي نو انګريزان دې پخپله روس سره د هغې متعلق خط و کتابت کوي. په دې طريقه د څهٔ مودې دپاره د امير شير علي خان او د انګريزانو او د روسيانو په مېنځکښې ډير ښهٔ تعلقات پاتې شول.

دغه نتيجه وه د افغانستان د کورنو بې اتفاقو او خانه جنګو چې دا مختار او ازاد ملک ئ ورو ورو د فيرنګيانو د اثر لاندې په دا شان راوستو چې هر يو امير به د خپل خان د مستحکم کولو او د خپل اولاد دپاره د افغانستان تاج و تخت محفوظ کولو په غرض د انګريزي حکومت هند نه د امداد اخستو او د هغوي په خپل ځان باندې د مشرۍ تسليم کولو کوشش کولو. يا هغه زمانه وه چې دې غيرتي قوم د انګريزانو دخل په خپل بيروني او اندروني معاملاتو کښې د خپلې ازادۍ دپاره دومره مضر ګڼلو چې د خپلو زرګونو عزيزانو وينې ئ توئ کړې زرګونه توريالي زلمي ئ په توپو کښې والوتل مالونه ئ تالا شول مګر د غير قوم حکومت ئ د خپل ملک نه لرې کړو اوس په دې باندې ديرش کاله تير شوي وو. او د يو مشترک دشمن په غير موجودګۍ کښې د دې قوم مشران په خپلو کښې شپه او ورځ نښتي وو. د دې لازمي انجام دا شو چې ملک کښې بدامني شوه. تجارت ورک شو، لارې غير محفوظې شوې او د ملک نه دولت لاړو. په دې ټوله عرصه کښې انګريزان بيغمه د خپل قوم او ملک په ترقۍ کښې مصروف وو او په ځاے د دې چې د يو بل پښې ئ راښکلې او د يو بل بيخ ئ ويستې په هغوي کښې د ورکوټي نه ورکوټے افسر د خپل سلطنت د مضبوطولو په کار کښې مصروف وهٔ. په کال 1808ء کښې خو انګريزان د پښتنو د دوستۍ د حاصلولو دپاره د شاه شجاع دربار ته څهٔ وخت چې هغه يو خودمختار او مطلق العنان بادشاه وهٔ يو شاندار سفارت د مسټر ايلفنسټن د مشرۍ لاندې د بادشاه د سلام دپاره راستولے وهٔ مګر په

شپیتهٔ کاله کښې پښتانهٔ د خپلې درجې نه دومره پریوتل چې د هغوي هر یو بادشاه دا کوشش کولو چې د فیرنګیانو مرسته ماته حاصله شي. او د هغې د حاصلولو دپاره شیر علي خان غوندې خودداره امیر د انګریزي حکومت یو ګورنر جنرل سره د هغوي په حکومت کښې د خپل ملک نه سلګونه میله لرې د ملاقات کولو تکلیف برداشت کړو. او د هغهٔ په دربار کښې ئې هغهٔ سره لیدل کتل وکړل. دا ټوله بې عزتي او سپکاوے د پښتون قوم وهٔ او د هغې وجه صرف د هغوي باهمي جنګ و جدل، اندروني خانه جنګي او د مشرانو بې اتفاقي وه. افسوس دے چې دا سلسله هم هغه شان جاري ده او هیڅوک دا خبره په یقین سره نشي وئیلے چې دا بې اتفاقه قوم به کله خپل ځان راټولوي او د پردو محتاجو نه به ځان خلاص کړي.

په کال 1870ء کښې د یعقوب خان خپل پلار امیر شیر علي خان سره ناچاقي راغله او لږه موده پس ئې ښکاره د هغهٔ برخلاف بغاوت وکړو. خبره دا وه چې یعقوب خان ډیر ځله د خپل پلار نه دا مطالبه کړې وه چې ما خپل جانشین تسلیم کړه. شیر علي خان هغهٔ له د دې هیڅ جواب نهٔ ورکولو ځکه چې د هغهٔ نیت دا وهٔ چې عبدالله جان خپل جانشین کړم. یعقوب خان هم د دې نه خبر شو او اخر کار په ستمبر 1870ء کښې هغه د کابل نه په دې وجه وتښتیدو او شیر علي خان ته ئې چیټهی ولیکله چې زما ژوند تنګ دے له دې کبله زهٔ وتښتیدم. خدائے او رسول ته وګوره او ما مهٔ کړوه، زهٔ تر دوؤ سپیږمو راغلے یم، نو که دیخوا راغلې نو ما نه به هیڅ سود بیا نهٔ مومې. له دې نه پس هغهٔ ټول ملګري ځان سره کړل او خپل کشر ورور ایوب خان سره د قندهار په لوري روان شو. نهٔ خو په غزني کښې او نهٔ په قلات غلزئ کښې د هغهٔ چا مرسته وکړه. اخر هغه په قندهار کښې په قندهار نادري کښې دیره شو. او په زور ئې د ځنې علاقو نه مالیه ټوله کړه ولې نهٔ خو فوځ هغهٔ سره ملګرتیا وکړه او نهٔ سول افسرانو. له دې کبله هغه د ګرشک په لوري وتښتیدو. هغهٔ بیا په ګرشک حمله وکړه خو وهل ئې وخوړل. او سیستان طرف ته لاړو. تر څهٔ مودې پورې هغه په سیستان کښې په طور د شړونکي وسیدو ولې په مارچ 1871ء کښې هغه د سیستان نه سره د خپلو ملګرو د هرات په طرف روان شو. او په غوریان ئې پیش قدمي وکړه. د غوریان د قلا فوځ هغهٔ سره ملګرے شو او بیا هغه په هرات ورورانډې شو. د هرات په ټوله صوبه باندې ئې قبضه وکړه. دا خبره د انګریزانو دپاره هم مضره وه ځکه چې په دې ورځو کښې د هغوي پالیسي دا وه چې په افغانستان کښې دې دننه امن و امان وي. او د شیر علي خان حکومت دې دا شان نهٔ کمزورے کیږي چې یو بل بهرنے حکومت دې په هغهٔ حملې کولو ته ولمسیږي. له دې سببه لارډ میو د یعقوب خان خپل پلار سره راضي نامه وکړه او د څهٔ مودې دپاره یعقوب بیا د پلار حاکمیت قبول کړو او شیر علي خان هغه د هرات ګورنر مقرر کړو. د دې خانداني بې اتفاقي

په وجه اوس انګریزي حکومت هند له دا ښه موقع په لاس ورغله چې هغوي د افغانستان په شاهي خاندان خپل پوره اثر وغورځوي. وروسته خو د شیر علي خان خپلو میړنو ورونو او وراره سره جنګونه وو چې هغه ئې د وائسراے هند په سلامی مجبور کړو او اوس چې د هغه خپل زوي د هغه په بیخ کنی پسې پریوتو نو چې څه پاتې عزت او رعب د پښتنو وه هغه هم په خاورو کښې یو ځاے شو.

په 1871ء کښې د ایران او د افغانستان په منځکښې د سیستان علاقې په ملکیت او حدودو باندې تنازعه پیښه شوه چونکې د دې معاملې په سلسله کښې انګریزانو ته د افغانستان په حکومت کښې د دخل ورکولو موقع په لاس ورغله او امیر شیر علي خان د هغې مخالفت کولو له دې کبله د دې تنازعې لږ په تفصیل سره ذکر کول مناسب دي.

د سیستان علاقه د ایران او د افغانستان په منځکښې پرته ده. تر کال 1747ء پورې دا علاقه د ډیر عمر نه د ایران په حکومت کښې شامله وه مګر څه وخت چې نادر شاه وفات شو نو دا ټوله علاقه د درانو په حکومت کښې د 1747ء نه پس شامله کړې شوه. او د احمد شاه او تیمور شاه په دوران حکومت کښې د سلطنت افغانستان یو جزو وګڼلے شو. د تیمور شاه د مرګ نه پس هر کله چې د هغه په زامنو شاه زمان او شاه محمود خان کښې خانه جنګی شروع شوې نو سیستان قریباً قریباً یوه خودسره علاقه شوه او تر څلویښت کاله پورې خودمختاره وه. څلویښت کاله پس شاه محمود او د هغه زوي کامران دا علاقه د هرات په صوبه کښې شامله کړه مګر لږه موده پس کوندل خان په هغې حمله وکړه او د قندهار حکومت سره ئې یو ځاے کړه. د دې نه پس به د دې علاقې په سر د سدوزو او د بارکزو جګړې کیدے. مګر تر 1851ء پورې بیا هغه د پښتنو د قبضې نه ونه وتله. په 1851ء کښې یعني قریباً یو سل کاله پس ایران بیا په سیستان باندې د قبضې کولو دعویدار شو او په 1856ء کښې ئې د لاش په ضلع باندې قبضه وکړه. اګرچې د عهدنامه پیرس (چې په مارچ 1857ء کښې د انګریزانو او د ایران په منځکښې شوې وه څه وخت چې ایران په هرات قبضه کړې وه) په مطابق ایران د دې ضلعې په پریښودو مجبور شو. مګر لږه موده پس هغوي بیا پیش قدمي په سیستان کښې په دې عذر شروع کړه چې سیستان د افغانستان هډو علاقه نه ده. حکومت برطانیه د دې جارحانه کارروایی برخلاف ایران ته ډیر څله ولیکل چې دا پیش قدمي د عهدنامه پیرس د شرطونو بالکل خلاف ده. مګر اخر کار په کال 1863ء کښې څه وخت چې انګریزانو ته دا معلومه شوه چې افغانستان د خپلو خانه جنګو په سبب سیستان کښې خپل حکومت نشي قائمولے نو حکومت برطانیه ایراني سفیر ته ووئیل چې مونږ په دې معامله کښې دخل ورکول نه غواړو او فریقینو له اجازت ورکوو چې دې خپل حقوق د توري په زور د سیستان په علاقه کښې ثابت کړي. هر کله چې ایران ته د انګریزانو دا فیصله معلومه

شوه نو هغوي سمدستي په سيستان باندې د مکملې قبضې کولو کارروائي شروع کړه او تر 1869ء پورې ئې په هغې باندې پوره پوره قبضه وکړه او خپل حکومت ئې پکښې جاري کړو. په دې زمانه کښې د امير شير علي خان او د هغهٔ د وروڼو په منځکښې خانه جنګي وه له دې کبله شاه ايران د سيستان نه علاوه د قندهار په علاقه کښې هم ورو ورو راوړاندې کيدل شروع کړل. هر کله چې په افغانستان کښې امن و امان شو نو شير علي خان لارډ ميو سره د خپل اقرار په مطابق د ايران دا ناجائزې پيش قدمي په ډير صبر سره وزغملې او پخپل مخ سر ئې هغوي سره نهٔ په سيستان او نهٔ په قندهار کښې په دې فوځي پيش قدمو فوځي جګړه واچوله. اګرچې په 1863ء کښې انګريزانو ايران له دا اجازت ورکړے وهٔ چې هغوي دې د سيستان فيصله افغانستان سره د تورې په زور وکړې مګر چونکې د شير علي خان دا يقين وهٔ چې انګريزانو ته دا په ښهٔ شان سره معلومه ده چې سيستان د افغانستان يو جزو دے له دې کبله هغهٔ په ځاے د دې چې په ايران ئې اعلان جنګ کړے وے نو انګريزان ئې د دې تنازعې د فيصلې دپاره د لارډ ميو د تجويز مطابق ثالثان مقرر کړل. په دې اميد چې بې جنګ او بې خونريزۍ به دا ملک په دې طريقه زما لاس ته راشي. شير علي خان په دې هم خبردار وهٔ چې يوه زمانه کښې فيرنګيانو پخپله ايران د عهدنامهٔ پيرس 1857ء د شرائطو مطابق په سيستان باندې د حملې کولو نه په دې وجه منع کړے وهٔ چې دا د افغانستان يوه حصه ده. د دې ټولو نه زياتي وجه د هغهٔ د انګريزانو په ثالث کولو کښې دا وه چې چونکې ايران مسلم طور سره د روس د اثر لاندې وهٔ او افغانستان د انګريزانو د اثر لاندې وهٔ نو د امير شير علي خان دا يقين وهٔ چې انګريزان به د ايران په نسبت زما زيات طرفدار وي. ځکه چې فيرنګيان دا نهٔ غواړي چې د ايران سلطنت دې هندوستان طرف ته زامخکښې شي. يا د هغوي طاقت دې زيات شي. پس څهٔ وخت چې لارډ ميو امير شير علي خان ته دا تجويز پيش کړو چې د سيستان تنازعه دې افغانستان او ايران دواړه د فيرنګيانو ثالثۍ ته پريږدي نو هغهٔ دا تجويز منظور کړو. کهٔ چرې هغهٔ ته دا لږ شان هم علم وے چې انګريزان به د خپل غرض دپاره په دې معامله کښې د ايران طرفداري کوي نو هغهٔ به ضرور ايران سره دا تنازعه په جنګ فيصله کړې وه. مګر هغه تيروتو او د انګريزانو په سياسي دام کښې ونښتو. په کال 1871ء کښې انګريزانو د دې تجويز په مطابق يو کميشن د افغانستان او د ايران په منظورۍ د سيستان د معاملې د فيصله کولو دپاره مقرر وکړو. د دې کميشن صدر سر ګولډ سمډ مقرر شو او د شير علي خان د طرف نه د هغهٔ صدر اعظم نور محمد شاه هغوي سره ملګرے شو. دې کميشن يوه لويه دوره په سيستان کښې وکړه او يو وړد تحقيقات ئې وکړو او بيا ئې يوه ډيره غير منصفانه فيصله وکړه. په دې فيصله کښې ګولډ سمډ د سيستان د علاقې بالکل بنجر او بې آب و ګياه علاقه افغانستان له او زرخيز او اباده علاقه ايران له ورکړه. حالانکې دا هر چا

تـه مـعـلـومـه وه چې په دې حصه باندې ايران د 1863ء نـه پـس د افـغـانستان د خانه جنګو په دوران کښې قبضـه کړې ده. امير شير علي خان په دې فيصله سخت ناراض شو او انګريزي وزيـر خـارجـه تـه ئ اپيـل وکـړو. ايـران هـم صرف د افغانستان د اپيل د نامنظوررولو په خاطر بالمقابل اپيل وکړو.

هـر کله چې د سر ايف ګولډ سمډ کميشن په سيستان کښې لا خپل تحقيق کولو نو د لارډ ميو او د هغۀ د مشيرانو په دماغ کښې دا خيال را پيدا شو چې اوس شير علي خان مکمل طـور سره زمونږ په قابو کښې راغلے دے او څونکې د سيستان معامله زمونږ زير غور ده له دې کبـله هغه زمونږ يوه خبره هم په بې باکۍ سره بشکته نشي غورځولے. د افغانستان خپل وقار او رعـب خـو د ډيـرې مـودې نه ورک شوے وۀ نو انګريزانو دا وخت د دې خبرې دپاره موزون وګـڼـلـو چې مونږ له خپل يو انګريز افسر په کابل کښې د شير علي خان د اندروني او بيروني پـاليسـي د نـګـرانـي دپـاره مـقررول پکار دي. او ورو ورو افغانستان هم د هندوستان د نورو رياستونو په شان يو رياست کړو. چنانچه په دې ورځو کښې لارډ ميو امير شير علي خان ته دا تـجـويز پيش کړو چې زۀ به عنقريب يو سفير کابل ته په دې غرض دراستوم چې يو خو به هغه تـا ته د انګريزي ثالـث فيصله واؤروي او دويم دا چې هغه به تا ته ستا د سلطنت د خير خواهي او د بهبـودۍ دپـاره څـۀ تـجـويـزونـه پـيـش کـړي. په حقيقت کښې دا د يو انګريز ريزيډنټ د مـقـررولـو دپـاره پـيـش خـيـمـه وه. چونکې امير شير علي خان د سر ايف ګولډ سمډ د فيصلې بـرخـلاف اپيل کړے وۀ او لا د هغې څۀ فيصله نۀ وه شوې له دې کبله دا د سـفير د راستولو تجويز هم په معرض التوا کښې پروت وۀ. مګر په اووم مارچ 1873ء د بـرطانيې وزير خارجه حکومت هند ته تار واستولو چې زۀ د ګولډ سمډ فيصله په ځاے پريږدم او د دواړو فـريـقـو اپـيـلـونـه نـامـنـظـوروم. هر کله چې دا اطلاع حکومت هند ته راورسيده نو وائـسـراے هـنـد لارډ نارتهـ بروک بياامير شير علي خان ته د يو انګريزي سفير افغانستان ته د ليږلـو تـجـويـز پيش کړو. چنانچه هغۀ يو خط امير صاحب ته وليکلو چې زما دا خواهش دے چې زۀ مسټر ډانلډ ميکناب د پيښور کمشنر کابل ته د دې غرض دپاره دروليږم چې يو خو د سيستان د فيصلې ټول تفصيلات او وجوهات تاته بيان کړي او بله دا چې هغه تاته د هغې ټول خـط و کـتـابت نتيجه پيش کړي چې کوم د انګلستان او د روس تر منځ د افغانستان د حدودو متعلق شوے دے. هر کله چې امير صاحب پوهه شو چې انګريزانو دا اراده کړې ده چې هغوي کـابـل تـه يـو انـګـريـزي سفير رااستوي نو هغۀ دا خبره خپلو وزيرانو او مشيرانو ته پيش کړه. هـغـوي ټـول د دې خـبـر په اوريدو سره وويريدل او شکمن شول. تر دريو ورځو پورې د امير صـاحـب پـه مشيرانو کښې په دې بحث مباحثه وشوه او معلوميږي چې هغوي دې تجويز ته د غيـر مـعمولي اهميت په نظر سره وکتل. د افغانستان مدبران خو هم بې عقله نۀ وو هغوي فوراً

وهه شو چې انګریزان د خپلو ماجبونو او د عطیو په بنا باندې په افغانستان کښې یو انګریزي ریزیډنټ شان مقررول غواړي. بس هغوي دا خیال وکړو چې کۀ چرې دا انګریزي سفیر کابل ته راورسیدو او هغۀ د افغانستان په کورنو معاملاتو کښې ګوتې وهل شروع کړل او امیر صاحب د هغۀ د وینا مطابق عمل ونۀ کړو نو د دې لازمي نتیجه به دا وي چې د انګریزانو او امیر صاحب تعلقات به بتدریج کشیده شي. اګر چې امیر شیر علي خان او د هغۀ سرداران د لارډ نارتهـ بروک د دې تجویز نه په زړۀ کښې خو ډیر ویریدل مګر امیر صاحب په خپل سرکاري جواب کښې هغۀ ته د دې شکونو او ګمانونو اظهار ونۀ کړو. هغۀ صرف دومره د مستر میکناب په جواب کښې ولیکل چې " قبل د دې نه چې یو انګریزي سفیر کابل ته د سیستان د فیصلې اورولو دپاره راشي دا به ښه وي چې ما ته تاسو په غټو الفاظو کښې دومره وښیئ چې دا فیصله کوم قسم ده او دا هم راته ولیکئ چې آیا دا سفیر به ما سره زما د سلطنت د بهبودی او د بهتری خبرې کوي." د دې جواب امیر صاحب ته انګریزانو باقاعده طور سره رد کړو او په څوارلسم اپریل 1873ء ئ امیر صاحب ته پنځۀ زره ټوپک په طور د تحفې پیش کړل. امیر صاحب بیا د انګریزي وکیل مقیم کابل عطا محمد خان په ذریعه وائسرائے هند ته ولیکل چې " زۀ به په ډیرې خوشحالی ستا د سفیر خیر مقدم وکړم مګر زما په خیال کښې به دا بهتر وي چې د دې سفیر د راتلو نه وړومبے زما یو وکیل هندوستان ته درشي او په دې دواړو معاملو کښې ستاسو د رائ نه ځان واقف کړي او بیا هغه ماته پوره واقعات را ورسوي. کۀ چرې زما وکیل سره د خبرو اترو کولو نه پس هم د وائسرائے دا خیال وي چې انګریزي سفیر دې کابل ته لاړ شي نو ماته د هغۀ په استقبال کولو کښې څۀ اعتراض نشته."
اګر چې د امیر صاحب په خط و کتابت کښې هغۀ دا خپل شکوک او ناراضګي نۀ وه ظاهره کړې مګر د امیر صاحب دې سرکاري خطونو سره کومې چیټې چې عطا محمد خان انګریزي وکیل مقیم کابل رااستولې وے د هغې نه دا معلومیږي چې د امیر صاحب د دربار ټول وزیران او سرداران د دې انګریزي سفیر کابل ته د راتلو سخت مخالف وو. د هغوي دا دلیل وۀ چې کۀ چرې یو انګریزي سفیر د سیستان د فیصلې اورولو دپاره راشي او امیر ته هغه فیصله منظوره نۀ وي نو کۀ چرې په کابل کښې چې د امیر صاحب صدر مقام دے هغه د دې فیصلې منلو نه انکار وکړي نو هسې نه چې دا د وائسرائے هند د سفیر یو قسم بې عزتي وګڼلې شي. او بیا د حکومت هند او د افغانستان په تعلقاتو خراب اثر واچوي. بل لوے شک د هغوي په زړونو کښې دا وۀ چې ممکن ده چې انګریزي سفیر د یعقوب خان او دنورو سردارانو په معامله کښې امیر صاحب ته د انګریزي حکومت رائ پیش کړي او کۀ چرې امیر صاحب دا رائ منظوره نۀ کړي نو بیا به هم په دواړو حکومتونو کښې زړۀ بداوے پیدا شي. د روس او د افغانستان د پولې د سوال متعلق د هغوي خیال وۀ چې دا سوال دومره اهم

دے چې بغیر د امیر صاحب او د وائسرائے هند د ذاتي ملاقات نه هغه بل څوک فیصله کولے نهٔ شي.

اخر کار حکومت هند د امیر شیر علي خان تجویز منظور کړو او امیر شیر علي خان نور محمد شاه خپل وزیر اعظم د حکومت افغانستان د طرف نه شملې ته وائسرائے سره د خبرو اترو دپاره ولیږلو. د هغوي په منځکښې وړومبے ملاقات په دولسمه جولائي وشو او چونکې په کال 1873ء کښې روس د خپلو عهدنامو خلاف (چې جنوري 1873ء کښې ئې حکومت برطانیه ته دا اطمینان ورکړے ؤ چې د روس اراده نهٔ د خیوا د اخستو ده او نهٔ د هغهٔ اراده د خپل سلطنت په وسط ایشیا کښې د نورو خورولو ده) د خیوا ټوله علاقه لاندې کړې وه په دې وجه د ټولو نه وړومبے هغوي د روس په دې، پیشقدمو بحث شروع کړو. امیر شیر علي خان سره پخپله د روس د دې پیشقدمی نه ډیره زیاته ویره پیدا شوې وه. چنانچه نور محمد شاه د امیر صاحب ټول خیالات د دې سوال متعلق لارډ نارتهـ بروک ته صفا صفا پیش کړل. او ورته ئې ووئیل چې حکومت برطانیه له حکومت افغانستان سره یوه غوټه پریکړې عهدنامه د دې غرض دپاره پکار ده چې کهٔ چرې روس یا بل بیروني حکومت د افغانستان په علاقه کښې د راوراندې کیدو په نیت څهٔ جارحانه کارروائي وکړه نو حکومت برطانیه به افغانستان ته فوځي، مالي او نور د هر قسم امداد ورکوي. په دې ورځو کښې په انګلستان کښې لبرل پارټي برسر حکومت وه. او لارډ نارتهـ بروک هم د دې ډلې سړے وۀ. چونکې لبرل پارټي د ابتدا نه په افغانستان کښې د خپلو تعلقاتو او د ذمه دارو د زیاتولو نه خلاف وه او دا هم هغوي نهٔ غوښتل چې مونږ کومه عهدنامه افغانستان سره کوؤ په هغې کښې د روس د جارحانه ارادو خاص طور سره ذکر وکړو. په دې وجوهاتو ډیوک آف ارګل په اول جولائي یعنې د وائسرائے او د نور محمد شاه د ملاقات نه دولس ورځې وړومبے وائسرائے ته تار ورکړے وۀ چې امیر شیر علي خان سره د مالي امداد په وعده کولو کښې ډیر احتیاط کوه. هسې نه چې د هغهٔ په زړهٔ کښې غیر ضروري ډیر امیدونه او توقعات پیدا شي. پس هر کله چې نور محمد شاه د وائسرائے نه افغانستان سره د روس د پیشقدمی متعلق د غوټې پریکړې عهدنامې کولو مطالبه وکړه نو لارډ نارتهـ بروک هغهٔ ته په جواب کښې ووئیل چې د برطانیه او د روس په منځکښې دا سمجهوته شوې ده چې د افغانستان شمالي اومغربي پوله دې دریائے آمو وي. هر کله چې روس د جنوری 1873ء د سمجهوتې خلاف د خیوا علاقه لاندې کړه نو فیرنګیانو سره بیا ډیر فکر پیدا شو او زار سره ئې د یو خاص عهدنامې کولو په غرض خط و کتابت شروع کړو. اخر د مختلفو تجویزونو نه پس د افغانستان د قطب د پولې متعلق یوه عهدنامه د روس او د فیرنګیانو په منځکښې دستخط شوه. د لارډ ګرینول وزیر خارجه برطانیه د تجویز متعلق دا پوله د بدخشان او د واخان په خوا

خوا کښې د سرکول نه چې واخلې نو تر هغه مقام پورې تلې وه چې کوم ځائے کښې د کوکچه سیند دریائے آمو یا پنجه سره یو ځائے کیږي. دغه شان دریائے آمو عن د خواجه سالار گودره پورې د روس او د افغانستان په منځکښې پوله شوه. دا گودر په هغه لار کښې دے چې کوم د بلخ نه بخارا ته ځي. د خواجه سالار د گودر نه پس دریائے آمو مخ په قطب قبله تلے دے. د دې گودر نه قبلې طرف ته دا شمالي حد په داسې طریقه تلے دے چې په هغې کښې د ایران تر سرحد پورې اندخوئ او میمنه ښارونه په افغانستان کښې شامل شوي دي. مگر مرو زوړ ښار او د ترکمانو نورې علاقې ترینه بهر دي. هم په دې عهدنامه کښې روسیانو اقرار وکړوچې افغانستان به د روس د دائره اثر نه بهر وي. دا حدبندي او اقرار په یو دیرشمه جنورۍ 1873ء د روس حکومت د پرنس گورچکوف په یو تحریر کښې تسلیم کړو. علاوه د دې نه روس دا اقرار کړے دے چې په افغانستان به همیش د روس د اثر د دائرې نه بهر وي او نۀ به هغه چرې د افغانستان په معاملو کښې دخل ورکوي بلکې دا فیصله شوې ده چې صرف انگریزانو ته به د افغانستان په خارجه پالیسۍ کښې د دخل ورکولو حق حاصل وي او د افغانستان په کورنو معاملو کښې به انگریزانو ته د گوتو وهلو اجازت نۀ وي. د دې نه پس لارډ نارتهـ بروک نور محمد شاه ته ووئیل چې کۀ چرې یو بیروني حکومت د افغانستان په علاقه باندې وبلوسیدو اوامیر صاحب د انگریزانو نه دا سوال وکړو چې هغوي دې په دې کښې دخل ورکړي نو کۀ چرې حکومت برطانیه په رضا صلاح او په خط و کتابت دا قسم تنازعه خوره نۀ کړې شوه نو دا اغلبه ده چې حکومت برطانیه به امیر صاحب ته د دې قسم حملې د مدافعت دپاره کافي امداد ورکوي. په شرط د دې چې امیر صاحب زمونږ نصیحت د ورومبے نه منلے وي. او په خپلو گاونډیانو کښې ئ چا له د جگړې څۀ جائز وجه او عذر په لاس نۀ وي ورکړے. له دې کبله وائسرائے نور محمد شاه ته ووئیل چې في الحال د روس په مقابله کښې د عهدنامې د لیکلو څۀ خاص ضرورت نشته. د دې دلائلو برخلاف نور محمد شاه وائسرائے ته ووئیل چې د امیر شیر علي خان د زار روس په یوه وعده هم اعتبار نشته او تر څو پورې چې فیرنگیانو په تحریر کښې افغانستان سره د هر قسم د امداد کولو وعده نۀ وي کړے تر هغې پورې به روس یا په یوه بهانه او یا په بله بهانه د افغانستان په سرحد باندې راوړاندې کیږي. او هرکله چې اوس د افغانستان او د روس پوله وجنگیدله نو غالباً چې هره ورځ به د پولې د نزدې والي په وجه په څۀ نه څۀ خبره د روس او د افغانستان تصادم پیښیږي. او هم د دې وړو وړو تنازعو په بنا باندې به یو ځل روس په افغانستان باندې دپیشقدمۍ څۀ بهانه ونیسي. ولې کۀ چرې انگریزان په تحریر کښې دا خبره راولې چې کۀ روس یا بل طاقت په افغانستان باندې پیش قدمي وکړه نو حکومت برطانیه به هغه خپل دشمن گڼي او افغانستان له به په هغه صورت کښې د روپو، د وسلې او د فوځ امداد ورکوي نو بیا به روس ته د دې

خبرې جرأت ونشي چې په افغانستان باندې قدم راوړاندې کړي. د ډېر بحث او مباحثې نه پس اخر نارتهـ بروک د نور محمد شاه په دلائلو باندې قائل شو. مګر چونکې هغهٔ ته د دې قسم د عهدنامې کولو اختيار نهٔ وهٔ له دې کبله هغهٔ په شپږويشتمه جولائي 1873ء وزير هند ته تار وليږلو:

" Amir of Kabul alarmed at Russian progress, dissatisfied with general assurance, and anxious to know how fat he may rely on our help if invaded. I propose assuring him that if he unreservedly accepts and acts on our advice in all external relations we will help him with money, arms and troops, if necessary, to expel unprovoked invasion. We to be the judge of the necessity. Answer by telegraph quickly.

ترجمه : امير کابل د روس په پيشقدمی ويريدلے دے او زمونږ په غير معين وعدو باندې مطمئن نهٔ دے. هغه دا معلومول غواړي چې کهٔ په هغهٔ حمله وشوه نو مونږ به هغهٔ له تر کومه پورې امداد ورکړو. زما دا تجويز دے چې مونږ هغهٔ له دا تسلي ورکړو چې کهٔ چرې هغه په خپل ټول بيروني تعلقاتو کښې زمونږ نصيحت بې چون و چرا اوري او په هغې عمل کوي نو مونږ به هغهٔ سره د روپو، د وسلې او کهٔ چرې ضرورت پيښ شو نو د فوځ امداد کوؤ او د بې وجې حملې مقابله به کوؤ. د ضرورت فيصله به زمونږ په لاس کښې وي. جواب د تار په ذريعه زر راکړه.

د دې تار په جواب کښې وزير هند د خپلې زړې پاليسی په مطابق وائسرائے ته هم په هغه ورځ تار دا رنګ ورکړو:

" Cabinet thinks you should inform Amir that we do not at all share his alarm, and consider there is no cause for it; but you may assure him we shall maintain our settled policy in favour of Afghanistan if he abioes our advice in external affairs."

ترجمه : د مجلس وزراء دا رائ ده چې تهٔ امير ته اطلاع ورکړه چې مونږ ستا ويرې سره اتفاق نهٔ کوؤ او زمونږ په خيال کښې د هغې څهٔ وجه نشته مګر تهٔ هغهٔ ته تسلي ورکولے شے چې مونږ به د افغانستان په حق کښې په خپلې طے شده پاليسی عمل کوؤ بشرطيکه هغه په خپلو بيروني معاملاتو کښې زمونږ په صلاح عمل کوي.

په شپږويشتم جولائي د نور محمد شاه او د وائسرائے په منځکښې دويم ملاقات وشو او په هغې کښې وائسرائے هغهٔ ته د حکومت برطانيه ذکر شوے رائ واؤروله. د نور محمد شاه په دې غير معين وعده باندې هيڅ تسلي ونشوه او هغه پوهه شو چې د وزير هند او د انګريزانو دا مدعا ده چې هغوي دې افغانستان سره يو دا قسم غوټه پريکړے معاهده ونکړي چې د هغې په وجه بيا د مخکښې دپاره د هغوي لاسونه افغانستان سره د مدد کولو په باره کښې وتړلے شي. فيرنګيانو په حقيقت کښې دا غوښتل چې مونږ به امير شير علي خان

همیش هسې په طمع کښې وساتو مګر مونږ به په هره معامله کښې د هغې موقع او وخت مطابق څۀ رنګ چې زمونږ رضا وي خپل طرز عمل اختیاروؤ. د دې برخلاف د نور محمد شاه دا دلیل وۀ چې کۀ چرې انګریزان دا غواړي چې د افغانستان خارجه پالیسي دې د هغوي د اثر لاندې وي نو د دې په عوض کښې انګریزانو له پکار دي چې د روس متعلق هغوي افغانستان سره قطعي عهدنامه وکړي. مګر دې ته نۀ لارډ نارتهـ بروک تیار وۀ او نۀ حکومت برطانیه. په دې سبب په دې معامله کښې د وائسرائے او د نور محمد شاه څۀ معاهده ونۀ شوه. او هغۀ ځان سره صرف هم هغه تحریرات د امیر صاحب د ملاحظې دپاره یوړل کوم چې د ابتدا نه لارډ نارتهـ بروک هغۀ ته ورکول غوښتل.

هر کله چې یو طرف ته د نور محمد شاه خبرې وائسرائے سره رواني وے نو بل طرف ته د هغۀ او د ایچي سن د حکومت هند سرکاتب خارجه په منځکښې د سیستان د تنازعې متعلق بحث مباحثه روانه وه. د سیستان په معامله کښې نور محمد شاه ته هم دومره مایوسي وشوه څومره چې هغۀ ته د روس په معامله کښې شوې وه. د هغۀ او د امیر صاحب په رائ کښې د سیستان کومه فیصله چې انګریزي ثالث کړې وه هغه سخته ناجائزه وه. او د هغوي دواړو دا کلکه طمع وه چې اخر الامر به انګریزان د ټولو واقعاتو د اوریدو نه پس په دې فیصله کښې ترمیم وکړي مګر هر کله چې د هغوي په رویه کښې نور محمد شاه هیڅ تبدیلي ونۀ لیده نو د هغۀ دا یقین وشو چې د حکومت هند او د حکومت برطانیه ټولې دعوې او وینا ګانې د افغانستان د خودمختارۍ او د مضبوط والي بابت کښې هسې زباني جمع خرڅ دے او تر کومه پورې چې د حکومت هند په دې کښې فائده وي نو تر هغې به هغوي افغانستان ته د بیروني حملو برخلاف امداد ورکوي ولې څۀ وخت چې د هغوي دا یقین وشي چې د افغانستان نه د ازادۍ په تلو سره هندوستان ته څۀ خطره پیښیږي نو بیا به هغوي افغانستان خپل قسمت ته پریږدي. غرض دا چې د شملې د ټولو خبرو اترو اثر په نور محمد شاه دا وشو چې انګریزان سراسر خپل سود او خپله فائده لټول غواړي او د افغانستان د ازادۍ او د مضبوطوالي هغوي سره صرف دومره فکر دے څومره چې د هغې تعلق د هندوستان حفاظت سره دے. د شملې نه د رخصتیدو په وخت لارډ نارتهـ بروک نور محمد شاه ته دا هم ووئیل چې د افغانستان د حکومت د مضبوطولو دپاره حکومت هند امیر صاحب له في الحال لس لکه روپۍ عطیه ورکوي.

خلاصه نتیجه د نور محمد شاه وائسرائے سره د ملاقات دا ووته چې حکومت هند امیر شیر علي خان سره صرف دا اقرار وکړو چې کۀ چرې د افغانستان او د بل یو بیروني حکومت په منځکښې څۀ تنازعه پیښه شوه او افغانستان د هغې اطلاع حکومت هند ته ورکړه نو ورومبے خو به حکومت برطانیه د دې تنازعې تصفیه په رضا صلاح سره د کیدو کوشش

کوي ولې کۀ چرې په رضا صلاح دا تنازعه خوره نۀ شوه نو بيا امير صاحب د حکومت برطانيه نه دا طمع لرلې شي چې هغوي به افغانستان ته د روپو، وسلې او کۀ چرې ضرورت وۀ نو د فوځ امداد هم ورکړي. ولې دا امداد به حکومت برطانيه د خپلې رضا مطابق، هغه وخت او په هغه شکل کښې ورکوي چې څنګه هغوي ته مناسب ښکاري. د امداد دې مشروط اقرار سره وائسراے دا قيدونه په امير صاحب باندې کښيښودل چې اول خو به امير صاحب هيچرې په بل حکومت باندې جارحانه کارروائي نۀ کوي او دويم دا چې امير صاحب به پخپلو ټولو خارجي امورو کښې د انګريزانو په صلاح ځي. د لس لکه روپو د خرڅ متعلق چې د کومو اول ذکر شوے دے وائسراے يو سخت ناجائز شرط ولګولو. او د هغې بابت ئې يو يادداشت نور محمد شاه له د امير صاحب په نوم د دې مضمون ورکړو چې څونکې حکومت انګريزي د افغانستان د خارجي امورو متعلق د افغانستان د سرحداتو د مضبوطوالي وغيره متعلق يوه لويه ذمه واري په سر باندې اخستې ده په دې وجه مناسب دي چې د لويې عهدې يو انګريزي افسر سره د يوې مناسبې عملې د افغانستان شمال، شمال مغربي سرحدات او د هغې نه پس بيا د سيستان سرحدات په ښۀ شان سره معائنه کړي. او بيا د کابل په لاره هندوستان ته راواپس شي او په کابل کښې امير صاحب ته هغه ټول تجويزونه پيش کړي چې کوم د هغې افسر په رائ کښې د افغانستان د ټولو سرحداتو د حفاظت دپاره ضروري وي.

هر کله چې نور محمد شاه د شملې نه کابل ته واپس لاړو او امير شيير علي خان ته ئې د خپلو خبرو خلاصه واؤروله نو د امير صاحب د خفګان څۀ حد پاتې نۀ شو. هغۀ د سيستان په معامله کښې د فيرنګيانو په فيصله سخت ناراض وۀ خو د هغوې د لحاظ نه ئې هيڅ کارروائي ونکړه. د روس په معامله کښې د هغۀ هم دا رائ شوه چې د انګريزانو منشا صرف خپله فائده مدنظر ساتل دي. هر کله چې د هغوي رضا وي او هر کله چې هغوي ته پخپله د څۀ نقصان رسيدو ويره وي نو هله پسته به هغوي ماته امداد راکوي. کۀ نۀ وي نو هغوي د دې پرواه دار نۀ دي چې افغانستان ته څۀ فائده ورسي يا نقصان. د لس لکه روپو د خرڅ په معامله کښې د وائسراے هند دا تجويز چې يو انګريزي فوځي مشن به د افغانستان سرحدات ملاحظه کوي او بيا به هغه کميشن امير صاحب ته د هغې د مضبوطوالي متعلق خپلې رائ پيش کوي. هغۀ ته سخت ناګوار او ناجائز ښکاره شو. غرض دا چې امير صاحب د شملې په کانفرنس د خپل زړۀ تسلي ونشوه او څونکې هغۀ ته دا معلومه وه چې کۀ ما د حکومت هند نه دا لس لکه روپۍ واخستې نو بيا به هغوي خپل نور تجويزونه ارو مرو په ما باندې منظوروي او انګريزي مشن به زما ملک ته راليږي له دې کبله هغۀ د هغې رقم د وصولولو نه انکار وکړو. د دې نتيجه دا شوه چې د افغانستان او د حکومت هند په منځکښې سياسي تعلقات په زوړ

بنیاد باندې پاتې شول چې کوم د لارډ میو په زمانه کښې وو.

امیر شیر علي خان د لارډ نارتهـ بروک د خط او د تجویزونو په جواب کښې یو ډیر معقول او مدلل خط ولیکلو چې په هغې کښې هغهٔ په ډیرو ښو الفاظو کښې د هغې دلائلو تردید کړے وهٔ چې کوم وائسراے هغهٔ ته د روس برخلاف د یو قطعي عهدنامې متعلق لیکلي وو او د سیستان د فیصلې برخلاف هغهٔ په ډیر خوددارانه لفظونو کښې د خپلې ناراضګی اظهار کړے وهٔ. ولې دا ئ ورته هم لیکلي وو چې د انګریزانو د خاطره به زما افسران د ایران برخلاف څهٔ عملي کار په خپل مخ سر نهٔ کوي. د فوځي مشن او د لسو لکو روپو د عطیې هغهٔ پخپل خط کښې هډو ذکر ونکړو او په اخر کښې ئ ورته صرف دومره ولیکل چې زهٔ ستا د دې وینا ډیره شکریه ادا کوم چې تهٔ به ما سره هم هغه شان دوستانه تعلقات ساتې کوم چې لارډ لارنس او لارډ میو ساتلي وو ولې کهٔ چرې د شملې د کانفرنس نه هم دغه هومره غرض مقصود وهٔ نو بیا د نور محمد شاه د درلیږلو نه څهٔ فائده وه. د انبالې کانفرنس د هغې دپاره کافي وهٔ.

هم په دې ورځو کښې وائسراے د پیښور د کمشنر مسټر ډانلډ میکناب په ذریعه امیر صاحب ته دا سوال کړے وهٔ چې تهٔ کرنل ویلنټائن بیکر نومے یو انګزیزي افسر له د هرات نه د کابل په لار د واپس تلو اجازت ورکړه. په دې خط کښې چې کوم امیر صاحب لارډ نارتهـ بروک ته د هغهٔ د شملې د کانفرنس د تجویزونو په جواب کښې لیکلے وهٔ، امیر صاحب د دې سوال د منلو نه په صفا او غوټ پریکړي الفاظو کښې انکار وکړو څکه چې هغه او د هغهٔ د دربار ټول وزیران او سرداران او عام خلق د هر یورپین او د هر انګریزي افسر د افغانستان په سرحد کښې د داخلیدو سخت خلاف وو. د هغوي ټولو په زړهٔ کښې دا خبره ناسته وه چې کهٔ چرې یو ځل د دې قوم سړو بیا په افغانستان کښې راتلل شروع کړل نو دا به د افغانستان په اندروني معاملاتو کښې د دخل ورکولو یوه پیش خیمه وي. د برنس او د هغهٔ نه پس میکناټن راتلل او د هغې ټولې نتیجې هغوي نه لا هیرې نهٔ وے. پس عامو خلقو او سردارانو به نهٔ صرف هغې بهرنو خلقو ته د نفرت په نظر کتل چې څوک به په سیاسي خیال افغانستان ته راتلل بلکې هغوي به د هغې امیر سخت مخالفت کولو چې چا به هغوي له د راتلو اجازت ورکړے وهٔ.

لارډ نارتهـ بروک له چې کله د امیر صاحب جواب ورسیدو نو هغهٔ یو بل خط امیر صاحب ته په طور د ګیلې راواستولو او ورته ئ ولیکل چې په کومو الفاظو کښې تا د کرنل ویلنټائن بیکر د افغانستان په لاره هندوستان ته د واپس راتلو سوال نامنظور کړے دے هغه بې ضرورته زیات سخت دے. بله ئ ورته دا خبره لیکلې وه چې تا د حکومت برطانیه د اقرارونو او زما د دې تجویز چې انګریزي افسران به ستا د سرحداتو د ملاحظې دپاره درځي په خپل

جواب کښې هيڅ حواله نۀ ده ورکړې او نۀ دې د هغې څۀ جواب ليکلے دے. په لسم اپريل 1874ء امير شير علي خان د وائسرائے د دې خط په جواب کښې هغۀ ته وليکل چې کوم اقرارونه او فيصلې زما او لارډ لارنس او د لارډ ميو په منځکښې شوي دي هغه بالکل کافي شافي دي او زۀ قوي اميد لرم چې تۀ به هم ما سره د خپل متقدم جانشينانو په طرز عمل باندې ښۀ په استقامت سره روان اوسې. د دې دپاره چې افغانستان او د هغې مقبوضات هميش په امن او په حفاظت کښې پاتې شي. د کرنل ويلنتائن بيکر د معاملې متعلق امير صاحب ورته وليکل چې زما رعايا ټول د غرونو شاړ خلق دے او په دا شان خلقو کښې د انګريز افسر سفر کول هسې ځان په خطره کښې اچول دي. د دې نه قبل ما مستر فورستهـ ته هم د يارقند نه زما د حکومت په لاره د هندوستان ته د واپس تلو اجازت نۀ دے ورکړے. ځکه چې زما زوي يعقوب خان زما برخلاف بيا بغاوت کولو ته مائل دے او ټول وطن د بې امنۍ په حالت کښې دے. د دې واقعاتو نه څۀ لږه موده وړاندې امير شير علي خان د يعقوب خان د خپل مشر زوي د سرکشۍ په سبب بيا د هغۀ نه سخت ناراض شوے وۀ له دې کبله هغۀ په دويشتم نومبر 1873ء عبدالله جان د ټولو نه کشر زوے خپل وليعهد مقرر کړو. او په ديرشم نومبر ئې د دې اطلاع حکومت هند ته باقاعده طور سره ورکړه. په يويشتمه جنورۍ 1874ء وائسرائے بغير د دې نه چې عبدالله جان ئې وليعهد تسليم کړے وے امير صاحب ته وليکل چې اميد دے چې تۀ به تر ډيرې مودې پورې پخپله ژوندے ئې او ستا وارث به ستا د تربيت او تعليم د لاندې په عدل و انصاف او په کاميابۍ سره د حکومت کولو سبق زده کړي ولې نۀ خو وائسرائے د عبدالله جان په وليعهد کيدو څۀ د خوشحالۍ اظهار وکړو او نۀ ئې امير شير علي خان ته په دې انتخاب څۀ مبارکبادي ورکړه.

يعقوب خان چې څۀ وخت د خپل پلار د دې فيصلې نه خبر شو نو ډير سخت ناراض شو. هغۀ سمدستي د هرات استحکامات مضبوطول شروع کړل او د بغاوت تيارے ئې شروع کړو. چونکې په هرات او د هغې په علاقه باندې قرار واقعي قبضه د يعقوب خان او د هغۀ د ورور محمد ايوب خان وه او د انګريزانو دپاره د هرات مقام بيشانه ډير اهميت لرلو له دې کبله انګريزانو د خپل غرض او د خپلې فائدې دپاره د يعقوب خان ملګرتيا شروع کړه. څۀ موده خو يعقوب خان په خپل زور او طاقت د خپل پلار خلاف د بغاوت رويه وچلوله مګر هغۀ سره روپۍ بالکل ختمې شوې او د هغۀ فوځونه بې تنخوا پاتې شول. په دې سبب هغه مجبور شو او پلار سره ئې بيا د روغې خبرې وکړې. امير شير علي خان خپل يو څو افسران هرات ته يعقوب خان ته واستول او هغه ئې کابل ته په دې اقرار راوستو چې امير صاحب به هغۀ ته هيڅ سزا نۀ ورکوي. يعقوب خان دې افسرانو سره کابل ته راغلو ولې يو څو ورځې پس امير صاحب هغه ګرفتار کړو او په بندي خانه کښې ئې واچولو. هرکله چې لارډ

نارتهـ بروک وائسرایے هند د دې نه خبر شو نو د خپل سفیر مقیم کابل عطا محمد خان په خلهٔ ئ شیر علي خان ته سوال جواب وکړو چې زهٔ په حیثیت ستا د یو دوست او خیر خواه دا امید کوم چې د یعقوب خان د گرفتاری افواه به غلطه ثابته شي او زهٔ د تا نه دا پوره طمع لرم چې په کومو اقرارونو او لوظونو چې تا یعقوب خان کابل ته راوستے دے هغه اقرارونه او لوظونه به نهٔ ماتوې او کهٔ چرې تا دا شان وکړل نو هم به خپل نوم وساتې او هم به د حکومت برطانیه دوستي. امیر شیر علي خان او د هغهٔ سرداران د وائسرایے په دې پیغام سخت ناراض شول. ځکه چې یو خو د هغې پیغام د اخري الفاظو نه دا صفا معلومیده چې حکومت هند امیر صاحب ته درپرده دا ویره ښیي چې کهٔ چرې هغهٔ یعقوب خان پرې نهٔ ښودو نو حکومت برطانیه به ورسره د دوستی تعلقات پریکړي. او بله دا چې حکومت هند د خپلو ټولو سابقه اقرارونو او وعدو نه بزخلاف نهٔ صرف د افغانستان په کورنو خبرو کښې دخل ورکوي بلکې د امیر شیر علي خان په خپل خانداني معاملاتو کښې هم ناجائزې گوتې وهي. پس د دربار لویو لویو سردارانو عطا محمد خان ته په جواب کښې ووئیل چې " د پلار او د زوي په منځکښې د اقرارونو او د وعدو د پوره کولو سوال هډو چرې نهٔ پیښیږي." او امیر صاحب د وائسرایے په جواب کښې هغهٔ ته ولیکل چې " زهٔ د دې خبرې منلو ته تیار یم چې د یعقوب خان بابت تاسو ماته سفارش چې کړے دے نو د دوستی په بنا مو کړے دے ولې زهٔ په دې نهٔ پوهیږم چې تهٔ ما نه د یو داسې زوي دپاره سفارش ولې کوے چې د هغهٔ د بدو کارونو په ذکر کولو هم زهٔ شرمیږم". او بیا ئ ورته مخکښې لیکلي وو چې " تر کومه پورې ما حکومت برطانیه سره خپله څهٔ بې لوظي او عهدشکني نهٔ وي کړے تر هغې پورې هغوي ته دا حق نهٔ شي حاصلیدے چې هغوي دې ما سره خپله دوستي پرېږدي." د دې نه پس لارډ نارتهـ بروک نهٔ خو بیا د یعقوب خان د رهایي بابت امیر صاحب ته څهٔ ولیکل او نهٔ ئ د هغهٔ د دلیلونو د جواب

ورکولو کوشش وکړو. غرض دا چې د لارډ نارتهـ بروک په زمانه کښې هم باوجود د شملې د کانفرنس د ناکامیابی نه دا خبره په ښهٔ شان سره واضحه شوه چې د افغانستان او د حکومت برطانیه په منځکښې به د دوستی او د سیاسي تعلقاتو هم په هغې شرطونو او بنیادونو وي کوم چې د لارډ میو او د لارډ لارنس په وخت کښې ایښودې شوي وو او هغه دا وو چې :
حکومت برطانیه به د افغانستان په کورنو معاملو کښې هیڅ قسم دخل نهٔ ورکوي. یو انگریزي افسر به هم د افغانستان په علاقه کښې نهٔ داخلیږي. حکومت برطانیه به امیر شیر علي خان سره ښه خوږه او گرمه دوستي ساتي.

امیر شیر علي خان د دې په بدل کښې صرف دومره اقرار کړے وهٔ چې په خارجي امورو کښې به زهٔ د حکومت برطانیه په رضا او په صلاح عمل کوم او خپلو ټولو گاونډي

حکومتونو سره به په صلح ژوند تیروم. دې کښې شک نشته چې انګریزانو د دې خوږې او ګرمې دوستۍ په ثبوت کښې امیر شیر علي خان له کله کله څۀ روپۍ او څۀ وسله هم ورکړې وه ولې هغۀ پخپله هیچرې هم د دې څیزونو سوال د انګریزانو نه کړے نۀ وۀ. البته د لارډ نارتهـ بروک نه چې هغۀ کوم څیز غوښتلو هغه دا وۀ چې زما اندروني او بیروني حفاظت دې حکومت برطانیه سره د یوې صافې او غیر مشکوکې عهدنامې په ذریعه نور هم مضبوط شي. ولې هر کله چې هغه په دې کوشش کښې ناکامیاب شو نو د هغۀ په زړۀ کښې کم نه کم دا تسلي خو موجود وه چې کۀ چرې یو بیروني حکومت د افغانستان په سرحداتو باندې حمله وکړه نو کۀ زما فیرنګیانو سره څۀ معاهده وي او کۀ نه خو هغوي به د خپلې فائدې دپاره ما سره امداد کولو باندې مجبور وي. د هغۀ په دې خبره باندې هم یقین وۀ چې تر کومه پورې ما انګریزانو سره څۀ لوظ یا وعده نۀ وي ماته کړې تر هغې پورې به هغوي افغانستان سره د هغه دوستۍ په لار چلیږي د کومې چې هغوي ما سره وقتاً فوقتاً وعده کړې ده. د امیر شیر علي خان برخلاف په دې ورځو کښې دا خبره هم بعضې خودغرضو انګریزي سیاستدانانو مشهوره کړې وه چې د شملې د کانفرنس نه پس هغۀ د انګریزانو نه طمع قطع کړې وه او کوم زاړۀ اقرارونه او عهدنامې چې د هغۀ او د حکومت برطانیه په منځکښې شوې وے هغه ټولې هغۀ منسوخ وګڼلې. او په دې سبب هغه ورو ورو خپل تعلقات روس سره پیدا کول شروع کړل. مګر په حقیقت کښې دا ټولې خبرې د هغۀ برخلاف دروغ دي. هغۀ بالکل د روس د امداد یا د خاص دوستۍ د حاصلولو کوشش په دې زمانه کښې نۀ وۀ کړے. بلکې د هغۀ رویه او پالیسي انګریزانو سره د شملې د کانفرنس نه پس هم قطعاً نۀ وه بدله شوے البته دومره خبره ضرور وه چې د شملې د کانفرنس د ناکامیابۍ نه پس د هغۀ په زړۀ کښې د انګریزانو د خودغرضۍ او د خود مطلبۍ په وجه ناراضګي ضرور وه او دا ناراضګي هغۀ په ښۀ شان سره فیرنګیانو ته واضحه کړې وه.

## نهم باب

د افغانستان په اندروني معاملو کښې د انګریزانو د مداخلت بهانې، او د هغې دپاره سازشونه، په کابل، قندهار او هرات کښې د پولیټیکل سفیرانو د تقررۍ دپاره د لارډ سالسبري وزیر هند او لارډ نارتهـ بروک وائسرائے هند تر منځ خط و کتابت، په انګلستان کښې د قدامت پسند پارټۍ حکومت، د نارتهـ بروک په ځائے د لارډ لیټن تقرري، او فارورډ پالیسي، د خان قلات سره د حکومت هند خفیه معاهده، قلات، کوئټه او دادر کښې فوځ مقررېدل، د شتر ګردن په لاره په افغانستان د لام ترلو دپاره پنډۍ کښې فوځونه جمع کېدل، او پنډۍ نه کوهاټ او کوهاټ نه تر ټل پورې سړکونه جوړول، د ډېلي دربار ته د تللو نه د امیر شیر علي خان انکار.

مونږ په وروستنو صفحو کښې دا خبره واضحه کړې ده چې د کال 1857ء نه تر کال 1874ء پورې د انګريزانو سرکاري پاليسي د افغانستان د اندروني سياسياتو متعلق د عدم مداخلت پاليسي وه. لارډ کيننګ په 1857ء کښې دا رائ پيش کړې وه چې انګريزانو له د افغانستان د پښتنو يو متحد او مضبوط حکومت جوړول پکار دي او د دې غرض دپاره چې افغانستان د انګريزانو او د روس په منځکښې د يو مضبوط ديوال کار ورکړي مناسب دي چې امير کابل په ټول افغانستان باندې عن تر هرات پورې خپل تسلط قائم کړي. د افغانستان په حکومت کښې دننه د انګريزي حکومت د دخل ورکولو او په هغې کښې د هغوي د سياسي اثر او تسلط قائمولو متعلق اګر چې هغهٔ ته خپلو ماتحتانو کښې ځنې افسرانو لکه جيکب دا تجويزونه پيش کړل چې انګريزانو له په افغانستان کښې دننه ورو ورو پيش قدمي کول پکار دي تر دې پورې چې هغوي تر هرات پورې په ټولو اهمو ځايونو باندې فوځي قبضې وکړي مګر د ډير غور نه پس هغهٔ د دې تجويزونو سره اتفاق ونکړو او د حکومت برطانيه پاليسي په افغانستان کښې مخکښې د تلو فارورډ پاليسي نه خلاف وه. د دې ذکر هم شوے دے چې د لارډ کيننګ نه پس سر جان لارنس يو بل وائسرائے ته سر هنري ګرين او سر بارټل فرير ګورنر جنرل بمبئ دا رائ پيش کړه چې انګريزانو له د خپل شمال مغربي حدودو د حفاظت دپاره دا شان سياسي قدمونه اخستل پکار دي چې هغوي په بلوچستان باندې پيشقدمي وکړي او ورو ورو د دې نه هم وړاندې شي مګر لارنس هم د دې فارورډ پاليسي سخت مخالفت وکړو او دا پاليسي تر 1874ء پورې د حکومت برطانيه سرکاري پاليسي پاتې شوه. مګر څهٔ وخت چې انګريزانو روس سره دا فيصله وکړه چې افغانستان به د روس د اثر د دائرې نه بهر او د انګريزانو د اثر د لاندې وي نو د انګريزي سياستدانانو هغې ټولي بيا سر راوچت کړو چې ځوک د فارورډ پاليسي طرف دار وو. او په مختلفو طريقو ئ دا تجويزونه پيش کړل چې انګريزان دې د افغانستان په مشرقي سرحد باندې په هغې ټولو مقاماتو قبضه وکړي چې د هغې نه بيا په اسانتيا سره هغوي د افغانستان په ټول ملک قبضه کولے شي.

دې طبقې ورو ورو دومره رسوخ پيدا کړل چې باوجود د دې ټولو عهدنامو، قرارونو او د وعدو نه چې د کومو ذکر په وروستنو بابونو کښې شوے دے د هغې زمانې حکومت برطانيه د دې ډلې په رائ باندې د عمل کولو فيصله وکړه او د هر زورور او طاقتور د زوړ عادت او قاعدې مطابق ئ د عهدنامو او اقرارونو دا کاغذونه بالائے طاق کښېښودل. او د افغانستان نه ئ د هغې د ازادئ او د خودمختارئ د اخستو سازشونه بنا کړل. مګر د دې برخلاف د لارډ ميو او د لارډ لارنس او د لارډ نارتهے بروک د اعلاناتو او د تسلو په موجودګئ کښې د امير شير علي خان په خواب و خيال کښې هم دا نهٔ ګرځيدل چې

انګریزان به په ځاے د دې چې د روس برخلاف ماسره جارحانه او مدافعانه لوظنامه وکړي او زما حکومت به د بهر د خطرو نه محفوظ وساتي. هغوي به پخپله زما د ملک د ازادۍ په بيخ ايستلو پسې شي. کوم وجوهات چې حکومت برطانيه په افغانستان باندې د دويم لام د تړلو بيان کړي دي هغه ټول په حقيقت کښې او د تاريخ په رڼا کښې دروغژن او مصنوعي ثابت شوي دي. دراصل د شير علي خان د ازادۍ او د خودمختارۍ رويه کومه چې هغهٔ انګريزي سياستدانانو ته د خپلو خبرو اترو په دوران کښې ښودلې وه او کوم کلکوالي او اصرار سره چې هغهٔ په افغانستان کښې د انګريزانو د افسرانو د داخليدو او د حکومت هند د افغانستان په اندروني معاملاتو کښې د دخل ورکولو د کوشش مخالفت کړے وۀ هغه د انګلستان په انګريزي سياستدانانو باندې ډير بد لګيدلے وۀ. او د هغې نه پس هغوي په دې کوشش کښې وو چې د افغانستان په تخت باندې يو داسې کس حکمران شي چې هغهٔ ته زمونږ د مطالباتو په منلو کښې د هيڅ قسم د چون و چرا د کولو جرأت نهٔ وي.اګر چې د افغانستان دويم لام په کال 1878ء کښې شروع شوے وۀ ولې د هغې دپاره انګريزانو د خپل طرف نه د کال 1874ء نه رده کښيښودل شروع کړي وو او په کال 1878ء کښې هغوي کابل ته د روسي سفارت د راتلو نه او بيا د هغوي په بدل کښې د خپل سفارت کابل ته په زور باندې د استولو نه ناجائزه فائده وچته کړه. او د خپل اصلي مقصد د حاصلولو دپاره ئې دا ښه موقع وګڼله. د دې سازش ابتدا په دې شان وشوه چې په دولسم جون 1874ء سر بارټل فرير چې وړومبے د بمبۍ ګورنر وۀ او په دې ورځو کښې د.وزير هند انګلستان د کونسل ممبر وۀ يو خط سر جان کے ته چې د وزير هند د محکمهٔ خارجه سر کاتب وۀ وليکلو او په هغې کښې ئې دا رائ پيش کړه چې حکومت هند له پکار دي چې هغوي په ټول افغانستان کښې انګريزي ايجنسۍ قائمې کړي او په کوئټه باندې سمدستي فوځي قبضه وکړي. بيا ئې مخکښې وليکل چې کهٔ چرې د هرات حاکم په دې رضا کيدے شي نو يو قابل انګريزي افسر دې فوراً د ايران د طرف نه سره د درې څلورو نائبانو هرات ته لاړ شي. او بيا دې يو مستقل انګريزي مشن په دې ځاے کښې قائم کړې شي. په دې ورځو کښې د هرات حاکم يعقوب خان د امير شير علي خان زوے وۀ چې د خپل پلار نه ئې بغاوت کړے وۀ او هغهٔ سره ئې د جنګ تيارۍ کولې. دې ذمه وار افسر د پلار او د زوي ترمنځ د زړهٔ بداوي نه په دې طريقه فائده وچتول غوښتل او دا منشا ئې وه چې انګريزان دې نهٔ صرف په هغې ټولو زړو عهدنامو او اقرارونو باندې ورغړي چې کومې هغوي شير علي خان او د هغهٔ پلار دوست محمد خان سره د دې قسم ايجنسو د نهٔ قائمولو متعلق کړے وے، بلکې اوس هغهٔ دا هم غوښتل چې افغانستان دې بيا په دوؤ حصو کښې تقسيم شي يعنې يوه د هرات ټوکړه او بله د باقي افغانستان علاقه. د دې تجويز مطابق سر بارټل فرير دا غوښتل چې د هرات حکومت دې د انګريزانو د سيوري لاندې د امير شير

علي خان نه وشوکولے شي او یعقوب خان له دې ور کړې شي او باقي افغانستان دې بدستور امیر شیر علي خان سره پرېښودې شي. او په هغې کښې دې انګریزي ایجنسی مقررې شي.

لارډ لارنس د سر بارټل فریر د دې ټول تجویز بیا سخت مخالفت وکړو مګر وزیر هند مسټر سالسبري وائسرائے هند لارډ نارتهـ بروک ته یو خط ولیکلو چې اګر کۀ دا وخت په وسط ایشیا کښې مونږ ته د روسي پیش قدمۍ متعلق څۀ خطره نشته ولې یورپ کښې صورت واقعات دا شان خطرناک دے چې مونږ له په وخت باندې څۀ نا څۀ احتیاطي امور اختیارول پکار دي. او هغه دا دي چې په هرات کښې دې یوه انګریزي ایجنسي سمدستي قائمه کړې شي او بیا دې د هغې نه پس هم دا قسمه ذویمه ایجنسي په قندهار کښې او بالاخر دې دریمه ایجنسي په کابل کښې مقرره شي خو في الحال دې د پښتنو د احساساتو د لحاظ په سبب په صدر مقام یعنې په کابل کښې انګریزي افسر نۀ مقررېږي. وزیر هند وائسرائے ته مخکښې په دې خط کښې دا ولیکل چې د دې کار روایې په جواز کښې تۀ امیر شیر علي خان ته دا ولیکه چې چونکې د انګریزي وکیل مقیم کابل اطلاعات انګریزي حکومت ته ډېر ناقص او نامکمل دي او د دې نه علاوه تا پخپله هم ډېر ځله وئیلي دي چې ما ته په هرات کښې د یو انګریزي افسر په قیام باندې څۀ اعتراض نشته. او دریم دا چې د دې ایجنسو په قیام کښې زیات تر د افغانستان فوائد مدنظر دي. په دې وجوهاتو کښې کۀ ستا نیت انګریزانو ته صفا وي نو تا له د دې ټولو تجویزونو په منلو کښې څۀ اعتراض کول نۀ دي پکار.

لارډ نارتهـ بروک د وزیر هند د دې خط په جواب کښې هغۀ ته یو تار د دې مضمون ورکړو چې زما په خیال کښې دا وخت او دا موقع په دې تجویز باندې د عمل کولو دپاره ناموزونه ده. لارډ نارتهـ بروک ته دا په ښۀ شان سره معلومه وه چې د امیر شیر علي خان او د هغۀ د قوم غیرت او خودداري به هیچرې هم دا خبره ونۀ زغملې شي ځکه چې دا خو صاف طور سره د هغوي نه د خپل ملک ازادي او خودمختاري اخستل وو. لارډ نارتهـ بروک وزیر هند ته دا هم ولیکل چې د هندوستان په محکمۀ خارجه کښې دا شان هیڅ تحریر نشته چې د هغې نه دا معلوم شي چې امیر شیر علي خان په هرات کښې د انګریزي افسر د مقرریدلو تجویز سره چرې هم اتفاق کړے دے.

څۀ موده خو وزیر هند د لارډ نارتهـ بروک د دې تار هیڅ جواب ورنکړو له دې کبله په دې اثنا کښې وائسرائے د پنجاب لفټیننټ ګورنر او د هغۀ د بعضې لویو لویو تجربه کارو افسرانو نه د لاندې سوالونو جوابونه وغوښتل.

☆ آیا ستا په خیال کښې به شیر علي خان پخپله رضا انګریزي افسران په طور د ریزیډنټانو په هرات، کابل او قندهار کښې پرېږدي؟

☆ آیا د دې قسم د ریزیډنټانو تقرري به د حکومت برطانیه دپاره څۀ سودمنه وي؟
☆ کوم اطلاعات چې هندوستاني وکیل مقیم کابل حکومت هند ته رالیږي آیا ستا خپله تسلي د هغوي متعلق شته چې دا اطلاعات درست او کافي دي او کۀ ناکافي دي، نو آیا تۀ داسې څۀ طریقه ښودلې شې چې مونږ ته پرې پوره او صحیح اطلاعات په لاس راشي؟

دا سوالات وائسرائے مسټر ایچ ډیویز لفټیننټ ګورنر پنجاب، کرنل سر آر پالک، د پېښور کمشنر میجر جنرل آر ټیلر، کمشنر امرتسر لفټیننټ کرنل منرو، د ډیره جاتو قائم مقام کمشنر کپتان کیویګنري چې په پښتنو کښې د کمناري په نوم مشهور دے او په هغه ورځو کښې د پېښور قائم مقام ډپټي کمشنر وۀ او مسټر ټي ایچ تهارنټن سیکرټري حکومت پنجاب ته د جواب دپاره ولیږل.

دې ټولو افسرانو د اول سوال بالاتفاق دا جواب ورکړو چې د انګریزي افسرانو په هرات په قندهار یا د افغانستان په بل ښار کښې په طور د ریزیډنټانو مقررول به امیر شیر علي خان ته سخت ناګوار وي. او پخپله خوښه به هغه دا خبره هیچرې منظوره نۀ کړي. د دویم سوال په جواب کښې مسټر ډیویز دا رائ ظاهره کړه چې په افغانستان کښې د انګریزي ریزیډنټانو د تقررۍ نه به هم امیر صاحب ته نقصان وي او هم به حکومت برطانیه ته. د پالک دا رائ وه چې کۀ چرې دا ریزیډنټان د امیر صاحب د رضا نه خلاف د افغانستان په لویو لویو ښارونو کښې مقرر شول نو د دې نه به حکومت هند ته هیڅ فائده نۀ وي. دغه رائ د ټیلر هم وه. منرو ولیکل چې د انګریزي ریزیډنټانو متعلق د امیر صاحب نه تپوس کول هم بې فائدې دي ځکه چې د افغانستان هر یو سردار د انګریزي افسرانو په افغانستان کښې دننه د تقررۍ خلاف دے. کیویګنري اګر چې دا ولیکل چې د دې ریزیډنټانو د تقررۍ نه به حکومت برطانیه ته بیشانه ډیره فائده وي مګر مخکښې هغۀ دا هم ولیکل چې کۀ چرې شیر علي خان ته دا خبره منظوره نۀ وي نو غالباً چې د دې نه به ډیرې خرابې نتیجې راپیدا شي. تهارنټن هم قریباً دغه شان رائ ولیکله.

د دویم سوال په جواب کښې ډیویز ولیکل چې د هندوستاني وکیل مقیم کابل روزنامچې تر ډیره حده پورې درستې وي او پوره وي. پالک ولیکل چې اګر چې د وکیل روزنامچې درستې وي خو ناکافي وي ولې دې سره هغۀ دا رائ ښکاره کړه چې کۀ چرې د افغانستان ټول رښتوني واقعات ولیکي نو د هغۀ ګزران به ډیر مشکل شي. له دې کبله هغۀ دا تجویز وکړو چې د هندوستان وکیل مقیم کابل د روزنامچو د تصدیق او د ترمیم دپاره دې حکومت هند د خپلو نورو ایجنټانو په ذریعه هم اطلاعات حاصلوي. منرو هم د عطا محمد خان روزنامچې قابل اعتبار وګڼلې. مګر کیویګنري ولیکل چې عطا محمد خان صرف هغه

هومره خبرونه حکومت هند ته ورکوي چې کوم د امیر صاحب د منشا مطابق وي له دې کبله حکومت هند له خپل مخبران د خبرونو د حاصلولو دپاره افغانستان ته لیږل پکار دي. تهارټن دا رائ ولیکله چې د وکیل مذکور اطلاعات درست خو وي خو کافي نۀ وي. ټیلر د دریم سوال هیڅ جواب ونۀ لیکلو.

وائسرائے ته چې د خپلو زړو او تجربه کارو افسرانو د طرف نه دا جوابونه را ورسیدل نو په اووم جون هغۀ یو مفصل خط وزیر هند لارډ سالسبري ته د خپل وړومبي تار په تائید کښې واستولو او دا ئ ولیکل چې عطا محمد خان وکیل حکومت هند مقیم کابل یو قابل اعتبار او معقول افسر دے. د هغۀ اطلاعات درست او صحیح دي او دا چې امیر شیر علي خان به هیچرې هم په رضا د انګریزي ریزیډنټانو په تقررۍ باندې راضي نۀ شي.

دې کښې شک نشته چې لارډ نارتهـ بروک وزیر هند ته دا هم لیکلي وو چې کۀ چرې یو انګریزي ایجنټ په هرات کښې مقرر کړېشي نو دا به ډیره ښه خبره وي. خو په شرط د دې چې امیر صاحب په دې باندې ښۀ خوشحاله وي. ولې کۀ چرې امیر صاحب په دې ناراض وي نو بیا حکومت هند ته د ایجنټ په مقررولو کښې سیوا د نقصان نه فائده هیڅ نشته. ولې دې سره هغۀ مزید دا هم ولیکل چې مونږ له د شیر علي خان نه دا تپوس کول هم نامناسب دي چې په هرات کښې دې زمونږ ایجنټ مقرر شي ځکه چې شیر علي خان به ضرور د هغې نه انکار کوي د هغې نه پس کۀ چرې حکومت هند د هغۀ په انکار چپ پاتې شي او پخپله زړه پالیسي باندې کاربند پاتې شي نو بیا به شیر علي خان ته نورو معاملو کښې هم د حکومت هند د مشورې نه د انکار کولو جرأت پیدا شي. په بل صورت کښې کۀ چرې مونږ د شیر علي خان انکار په بد رنګ او په دشمنۍ واخلو نو بیا ضروري ده چې حکومت انګریزي هغه ټول اقرارونه چې کوم امیر شیر علي خان سره د امداد متعلق شوي دي، واپس واخلي. او کۀ چرې دا اقرارونه د هغۀ نه واپس واخستې شول نو دا به یوه ډیره ناجائز خبره وي. ځکه چې معلومه خبره ده چې شیر علي خان او د هغۀ عام رعایا انګریزانو سره د دشمنۍ کولو نه بغیر هم د انګریزي ریزیډنټانو د مقرریدلو نه سخت مخالف دي. له دې نه علاوه شیر علي خان د انبالې کانفرنس نه پس پخپلو ټولو خارجي امورو کښې د حکومت هند رائ او مشوره په خان منظوره کړې ده او په دې ټوله زمانه کښې هغۀ هیچرې هم داسې کار نۀ دے کړے چې د هغې په وجه د افغانستان او د یو بل بیروني حکومت تعلقات کشیده شوي وي. او انګریزي مفادو ته څۀ نقصان رسیدلے وي. په اخر کښې لارډ نارتهـ بروک دا ولیکل چې کۀ چرې روسیانو په مرو باندې قبضه وکړه نو په هغه صورت کښې به دا مناسب وي چې د افغانستان او د حکومت برطانیه په منځکښې یوه غوټه پریکړې جارحانه او مدافعانه عهدنامه وشي. پس د هغې نه به په هرات کښې د یو انګریزي ایجنټ د مقرریدو سوال راپیدا شي.

لارډ سالسبري په نولسم نومبر 1874ء د لارډ نارتهـ بروک د دې خط دا شان جواب ولیکلو چې د هغهٔ د ټول تحریر نه ئ بالکل اړولے معنیٰ واخسته . لارډ سالسبري هغهٔ ته ولیکل چې ستا د رپورټ نه معلومیږي چې د وکیل مقیم کابل اطلاعات بلا شک و شبه ناکافي دي او دې کښې هم شک نشته چې د شیر علي خان رویه د حکومت برطانیه متعلق څهٔ ښه نهٔ ده او نهٔ نور بیروني حکومتونو سره د هغهٔ تعلقات څهٔ ډیر خوشګوار دي. او نهٔ د هغهٔ په خپل ملک کښې پوره امن و امان دے له دې کبله ممکن ده چې په لږو ورځو کښې څهٔ دا شان واقعات پیښ شي چې د هغې په وجه نورو بیروني حکومتونو ته په افغانستان کښې د پرو جنبو جوړولو موقع په لاس ورشي. او هم د افغانستان او هم د حکومت برطانیه مفادو ته نقصان ورسي. پس وائسرائے دې في الحال یو انګریزي سفارت امیر شیر علي خان له واستوي او د هغې د استولو د مقصد دپاره دې یو څو نور معمولي سیاسي امور بهانه کړي او د یو مستقل انګریزي مشن د مقررولو معامله دې پټه کړي. دا سفارت دې رسیدو سره په ظاهره خو شیر علي خان سره د انګریزي حکومت د طرف نه په ډیره نرمي او خوش خلقي سره خبرې وکړي ولې په معنیٰ کښې دې هغه په ښهٔ شان سره پوهه کړي چې کهٔ چرې هغه انګریزي ریزیډنټان په خپل ملک کښې د حکومت برطانیه د منشا مطابق پرې نښودل نو د هغهٔ خودمختاري به د نورو قومونو د لاسه په سخته خطره کښې پریوځي.

لارډ نارتهـ بروک او د هغهٔ کونسل د لارډ سالسبري د دې ټول تجویز سخت مخالف وو ولې چونکې د وزیر هند حکم صاف او قطعي وهٔ چې د دې سفارت د لیږلو دپاره دې فوراً انتظام وشي د دې دپاره لارډ نارتهـ بروک وزیر هند ته دوباره صرف دومره ولیکل چې کهٔ چرې دا سفارت اړو مرو کابل ته استولے کیدے شي نو پکار دي چې د هغې اصلي مدعا او مطلب دې د وړومبے نه امیر صاحب ته ښکاره کړې شي ځکه چې هغه دومره ناپوهه نهٔ دے چې د هغهٔ په دې خبره باور وشي چې دا خاص سفارت انګریزان صرف د یو څو معمولي سیاسي خبرو دپاره رالیږي. د دې نه علاوه وائسرائے هغهٔ ته دا ولیکل چې آیا د دې ریزیډنټانو د مقررولو په عوض کښې حکومت برطانیه شیر علي خان له د بیروني حملو برخلاف غیر مشروط امداد ورکولو ته تیار دے او کهٔ نه. او بله دا چې کهٔ امیر شیر علي خان د هرات د حفاظت او د فوځ د تنظیم دپاره د انګریزي حکومت نه څهٔ امداد وغواړي نو حکومت برطانیه تر کومه حده پورې د هغهٔ دا مطالبه منظورولو ته تیار دے. د ټولو نه اخر کښې لارډ نارتهـ بروک یو ځل بیا په دې الفاظو کښې د وزیر هند د ټول تجویز سخت مخالفت وکړو :

" It is in the highest degree importable that the Amir will yield a hearty concent to the location of British officers in Afghanistan which the mission is intended to accomplish; and to place our officers on the Amir's frontier without his

hearty concent would, in our opinion, be a most impolitic and dangerous movement. Sitting aside the consideration of the personal risk, to which, under such circumstances, the agents would be exposed, and the serious political consequences that would ensure from their being insulted or attacked, their position would be entirely useless. They would be surrounded by spies under the pretext of guarding them or administering to their wants. Persons approaching or visiting them would be watched and removed; and though nothing might be done ostensibly which could be complained of as an actual breach of friendship, the agents would be checked on every hand, and would soon find their position both humiliating and useless. Such was the experience Major Todd at Hirat in 1839. when his supplies of money failed. Such was the experience of Col. Lumsden when he went to Qandahar in 1857, as the dispenser of a magnificent subsidy.

A condition of things like this could not exist for any length of time without leading to altered realations, and possibly even, in the long run, to a rupture with Afghanistan, and thereby defeating the object which her majesty's Govt; have in view. We already see the fruks of the conciliatory policy which has been pursued since 1869, in the consolidation of the Amir's power and the establishment of a strong Govt; on our frontier. The Amir's not unnatural dread of our interference in his internal affairs and the difficulties of his position as described in our despatch of the 7th of June last, combined, perhaps, with the conviction that, if ever a struggle for the independence of Afghanistan should come, we must in our own interest help him, may have induced him to assume a colder attitude towards us than we should desire. But we have no reason to believe that he has any desire to prefer the friendship of other powers. We are convienced that a patient adherence to the policy adopted towards Afghanistan by Lord Canning, Lord Lawrence, and Lord Mayo, which it has been our earnest endeavour to maintain, presents the greatest promise of the eventual establishment of our relation with the Amir on a satisfactory footing, and we deprecate, as involving serious danger to the peace of Afghanistan and to the interests of the British Empire in India, the execution under present circumstances, of the instructions conveyed in your Lordships despatch."

ترجمه : دا حد درجه غیر اغلب ده چې امیر به په افغانستان کښې د انګریزي افسرانو د مقررولو تجویز کوم چې مونږ د دې مشن په ذریعه پوره کول غواړو په خپلې خوش رضایی منظور کړي او زمونږ په رائ کښې د امیر په سرحداتو باندې د انګریزي افسرانو بغیر د هغهٔ د خوش رضایی نه مقررول یوه سیاسي بې عقلي او خطرناک تحریک دے. کهٔ چرې مونږ دا خبره هم نظر انداز کړو چې دې ایجنټانو ته به د دې حالاتو کښې د ځان خطره وي او کهٔ چرې د هغوي بې عزتي وشوه یا پرې حمله وشوه نو د هغې سیاسي نتائج به خطرناک وي. مګر بیا به هم د هغوي حیثیت بالکل بې سوده وي. مخبران به هر وخت د هغوي نه راچاپیره وي او بهانه به دا وي چې مونږ به د هغوي څوکی کوؤ او یا به ئې خدمت کوؤ. کوم خلق چې هغوي

تــه رانزدې کيږي يا د هغوي ملاقات له راځي نو د هغوي به څوکی کيږي. او د هغه ځاے نه به شړلے کيږي او اګر چې په ظاهره به دا شان هيڅ کار نۀ کيږي چې د هغې متعلق څوک دا شکايت وکړې شي چې ګڼي په دې دوستانه تعلقات منقطع کيږي. خو په هر طرف به د دې ايجنټانو نګراني کيږي. او ډير زر به هغوي ته خپل ځان سپک او بې فائدې ښکاره شي. هم دغه حالت په 1839 کښې د ميجر ټاډ په هرات کښې وۀ څۀ وخت چې د هغۀ د روپو ذخيره ختمه شوه او هم ذغه شان تجربه د کرنل لمسډن وه. هر کله چې هغه قندهار ته د يو ډير لوے رقم د ويشلو دپاره په 1857 کښې لاړ وۀ.

ممکن نۀ ده چې دا قسم صورت حالات تر ډيرې مودې هم دغه شان پاتې شي. بغير د دې نـه چې يـا خو افغانستان سره زمونږ تعلقات بالکل بدل شي او يا بالاخر هغوي سره زمونږ تـعلقات بالکل منقطع شي. او کوم مقصد چې د ملکې معظمې د حکومت مدنظر دے هغه په دې طريقه فوت شي . د صلاحيت په کومه پاليسی چې مونږ د 1869ء نه عمل شروع کړے دے د هغې نتيجې د اوسه نـه پـه نـظر راځي يعنې دا چې د امير طاقت مضبوط شوے دے او زمونږ په سرحد باندې يو طاقتور حکومت قائم شوے دے . د امير موجوده د سرد مهرۍ رويه چې کومه هغۀ مونږ سره اختيار کړې ده د هغې وجوهات غالباً دا دي چې يو خو د امير په زړۀ کښې قدرتي طور دا ويره ده چې مونږ د هغۀ په اندروني معاملاتو کښې دخل ورکوۀ او بل لکه چې څرنګ مونږ پخپل تحرير مورخه اووم جون کښې تشريح کړې ده د هغۀ د خپل حالت بعضې مشکلات دي او غالباً چې دا ئ هم يقين دے چې کۀ چرې د افغانستان په سلسله کښې څۀ جنګ پيښ شو نو مونږ به د خپلې فائدې په خاطر ضرور هغۀ له امداد ورکوۀ مګر په دې خبره د يقين کولو دپاره مونږ سره هيڅ وجوهات نشته چې امير د نورو حکومتونو دوستي زياته غوره کوي. زمونږ دا يقين دے چې کۀ چرې مونږ په هغې پاليسی چې کومه لارډ کيننګ، لارډ لارنس او لارډ ميو د افغانستان متعلق اختيار کړې وه په صبر سره عمل وکړو او تر دې وخته پورې زمونږ هم دا کوشش وۀ چې په هغې دې عمل وشي نو د دې نه زمونږ دا پوره طمع ده چې بالاخر به زمونږ او د امير تعلقات په تسلي بخش بنيادونو قائم شي. او مونږ په موجوده واقعاتو کښې د هغې هداياتو چې کوم د حضور لارډ صاحب په تحرير کښې دي تعميل کولو سخت مخالف يو ځکه چې په دې تجويز کښې د افغانستان امن ته او په هندوستان کښې انګريزي مفادو ته هم سخته خطره ده.

ناظرينو ته به ياد وي چې د دې نه وړومبے لارډ نارتهـ بروک په هغه ورځو کښې چې نور محمد شاه د شملې کانفرنس دپاره تياري کوله امير شير علي خان ته د يو انګريزي سفير کابل ته د تلو اجازت ورکړے وۀ ولې امير صاحب د دې سخت مخالفت کړے وۀ بلکې هغۀ د وائسراے د لس لکه روپو د عطيې د اخستو نه هم په دې وجه وروستو انکار کړے وۀ چې

هسې نـه چې د مخکښې دپاره د دې روپو په عوض کښې انګریزي حکومت زما په سرحدي ښارونو کښې د یورپین افسرانو د تقرری مطالبه زما نه وکړي په دې سبب لارډ نارتهـ بروک ته د امیر صاحب د احساساتو په دې باره کښې بلا واسطه علم وۀ. او هم په دې سبب هغۀ او د هـغۀ کونسل په دومره صفا الفاظو کښې د وزیر هند د مجوزه انګریزي سفارت د لیږلو او بیا پـه افـغـانستان کښې په لویو لویو ښارونو کښې د انګریزي ایجنسو د قائمولو سخت مخالفت وکړو. بـاوجـود د وائسـرائے هـنـد او د هـغـۀ د کـونسل د مخـالفت نـه او سره د دې چې د هـنـدوسـتـان نـور لـوے لـوے مـقـامـي پولیټیکل افسران هم د دې ټول تجویز مخالف وو خو چـونکې په انګلستان کښې د څۀ مودې نه د لبرل پارټي په ځاے د کنزرویټیو (قدامت پسند) پـارټـي حـکـومـت راغـلـے وۀ او ډسـریـلي چې د دې ټولي مشر وۀ وزیر اعظم شوے وۀ او د ډیـوک آف آرګـل پـه ځـاے لارډ سـالسبري وزیر هند وۀ له دې کبله د لارډ نارتهـ بروک دا یـقـیـن نۀ وۀ چې حکومت برطانیه به زما رائ سره اتفاق وکړي. په دې وجه لارډ نارتهـ بروک (چې د لبرل پارټي سړے وۀ) خپل مذکور تحریر سره وزیر هند ته خپله استعفیٰ هم واستوله. لارډ سالسبري لکه څرنګ چې د وائسراے توقع وه د هغۀ په رائ هیڅ توجه ونۀ کړه او د هغۀ مـدبرانه منصفانه او معقول خیالات ئ نۀ صرف رد کړل بلکې د هغۀ په ځاے حکومت برطانیه لارډ لیټـن وائسـراے مـقرر کړو. هر کله چې لارډ لیټن هندوستان ته را روانیدو نو وزیر هند هغۀ له د افغانستان د دې معاملې متعلق دا قسم تحریري هدایات ورکړل چې هغه د لارډ نارتهـ بـروک د خیالاتو نه بالکل متضاد او مخالف وو. دغه شان ډسریلي او د هغۀ حکومت د خپلې فارورډ پالیسي مطابق د لارډ کیننګ، لارډ لارنس، لارډ میو او لارډ نارتهـ بروک پالیسي او عهـدنامې چې کومې افغانستان سره وړومبے شوے وے بالائے طاق کښیښودې او لارډ لیټن د سالسبري د هدایت نامې مطابق فوراً عمل شروع کړو.

د ټـولـو نه وړومبے خو لارډ لیټن په بلوچستان کښې د انګریزي فوځونو د دیره کولو او پـه کوئټه باندې د فوځي قبضې کولو فیصله وکړه. په دې سلسله کښې وړومبے د دې ذکر کـول مناسب دي چې دې علاقه کښې هم د پښتنو د نورو قبائلو په شان د ډیرې مودې نه خانه جـنـګـي شـروع وے او پـه ملک کښې بدامني وه. تر دې پورې چې د لارډ نارتهـ بروک په زمـانـه کښې د خان قلات او د هغۀ د سردارانو په منځکښې بې اتفاقي او دشمني دومره زیاته شوې وه چې په درۀ بولان کښې د تجارت لاره هم د بد امنی په سبب بنده شوه. اخر حکومت هند مجبوراً په دې معامله کښې دخل ورکړو او لارډ نارتهـ بروک میجر سنډیمان چې یو ډیر لائق او یـوتـجـربـه کـار فـوځي افسر وۀ دبلوچستان په فریقینو کښې د صلاحیت کولو دپاره واستـولـو. طـرفـیـن د میـجـر سنډیمان په ثالثی باندې رضا شول او هغه د څۀ کوشش نه پس د خـان او د سـردارانـو پـه مـنـځکښې روغه وکړه ولې څۀ وخت چې سنډیمان د بلوچستان نه

واپس شو نو د دې ملک او د قوم دا شان بد نصیبے وۀ چې سمدستي په هغوي کښې بیا خانه جنګي شروع شوې. سنډیمان بیا یو زر کسانو سره د امن قائمولو دپاره بلوچستان ته لاړو. او کۀ چرې لارډ نارتهـ بروک غوښتلي نو دې کښې شک نشته چې په دې موقع هغۀ د بلوچو د بې اتفاقی نـه فائده اخستې شوه او په بلوچستان کښې ئ د امن قائمولو په بهانه هغۀ په ډیره اسانتیا سره په کوئټه قبضه کولے شوه. ولې هغۀ ته دا په ښۀ شان سره معلومه وه چې په کوئټه بانـدې قبضـه کولو سره به د حکومت افغانستان په زړۀ کښې د حکومت هند د ارادو متعلق بدګمانـي پیـدا شي ځکه چې کوئټه د قندهار کُنجي ده. په دې وجه وائسرائے لارډ نارتهـ بـروک سنډیمان ته صاف طور سره ولیکل چې تۀ صرف دومره کار وکړه چې د جیکب اباد او د شکـار پـور قـافـلـو تـه د درۀ بولان لاره ازاده شي او د خان قلات او د هغۀ د سردارانو په منځکښې راضي نامه وشي . دا ځل سنډیمان حقیقي طور سره کامیاب شو او په فریقینو کښې پـه قسـم او په قرآن راضي نامه وشوه. میجر سنډیمان د صلاحیت په دې کار کښې لا هم هغه شـان مشغـول وۀ چې لارډ نارتهـ بروک انګلستان ته رخصت شو او لارډ لیټن د هغۀ په ځائے راغـلـو. کـۀ چـرې لارډ نارتهـ بروک بدستور وائسرائے وے نو هغۀ به غالباً د امن قائمیدلو نه پـس میجر سنډیمان ته د بلوچستان نه د واپسی حکم ورکړے وے. مګر د لارډ لیټن دا منشا وه چې پـه بلوچستان کښې دې انګریزي فوځونه نور هم ورننوځي. د دې دپاره چې انګریزي اقتـدار نـۀ صـرف په بلوچستان کښې زیات شي بلکې هغه په افغانستان باندې هم د انګریزانو رعب واچوي. چنانچه لارډ لیټن په ستمبر 1875ء کښې خپـل پرائیویټ سیکرټري کرنل جي پـي کـولـيؔ د دې غـرض دپاره بلوچستان ته واستولو چې هغه د حکومت هند د طرف نه خـان قـلات سره یوه داسې خفیه معاهده وکړي چې د هغې شپږم شرط دا تجویز شوے وۀ چې خـان قـلات بـه په علاقه کښې مستقل طور سره انګریزي فوځونه د دیره کیدو دپاره پریږدي. کـرنـل کـولـي تـه خفیه هدایات لارډ لیټن دا ورکړل چې په کوئټه باندې دې هم فوځي قبضه وکـړې شي او د نـورو فوځونو دیره کولو په خاطر دې چارچاپیره علاقه د فوځي نقطۀ نګاه نه مـلاحظه کړې شي. کوليؔ په اتلسم اکتوبر قلات ته ورسیدو او څرنګ چې د لارډ لیټن منشا وه هـم هـغـه شان عهدنامه ئ د قلات خان سره وکړه. او یو انګریزي پولیټیکل ایجنټ سره د فوځـونـو او د تـوپـخـانې په قلات کښې مقرر شول او څۀ نور فوځونه په دادر او څۀ په کوئټه کښـې دیره شول. او دغه شان قندهار مکمل طور سره د انګریزانو د فوځ په زد کښې راغلو. دا ټـولـه کارروائي لارډ لیـټـن هـم د دې غرض دپاره کړې وه چې په شیر علي خان باندې د انګریزانو د ارادو یو خوف او هیبت پیدا کړي او په دې طریقه هغه مجبور کړي چې بیا په هغۀ کښې د انګریزانو د تجویزونو د نۀ منلو جرأت پاتې نۀ شي.

مـونـږ د دې نه وړومبے ذکر کړے دے چې کرنل پیټر لمسډن لارډ لارنس ته دا رائ

ور کړې وه چې انګریزانو له په درهٔ کرم او خوست باندې قبضه کول پکار دي او لارډ لارنس د هغهٔ دا رائ نامنظوره کړې وه. لمسلهن اوس د لارډ لیټن په زمانهٔ حکومت کښې ایډجوټنټ جنرل شوے وهٔ او چونکې د قدامت پسند ټولي او د لارډ لیټن د ارادو نه خبردار وهٔ هغهٔ بیا دا تجویز لارډ لیټن ته پیش کړو او میجر جنرل فریډرک رابرټس چې بیا وروستو د هندوستان د فوځونو کمانډر انچیف او د لارډ رابرټس په نوم بللے شوے وهٔ او په دې ورځو کښې کوارټر ماسټر جنرل وهٔ د هغهٔ په مرسته ودریدو. کوم تجویز چې د لارډ لارنس غوندې تجربه کار او منصف مزاج سیاستدان نامنظور کړے وهٔ هغې د نا تجربه کار او تندخویه لارډ لیټن په زړهٔ باندې دومره اثر وکړو چې د کوئټې او د بلوچستان د کارروایی نه پس هغه په دې خیال کښې ولګیدو چې څرنګ به د شتر ګردن په دره باندې قبضه وکړم چې بیا د هغې په ذریعه زهٔ د امیر صاحب صدر مقام کابل په خطره کښې واچوم او یا شیر علي خان د تخت نه کوز کړم او یا ئ د خپل لاس یوه ګوډۍ کړم او خپل ټول شرطونه پرې تسلیم کړم. د دې غرض دپاره لارډ لیټن وړومبے خو د فوځي نقل و حرکت د اسانۍ دپاره پنډۍ او د کوهاټ په منځکښې د ټول سړک مرمت شروع کړو ځکه چې د ریل ګاډے خو لا جوړ شوے نهٔ وهٔ او په موجوده لارو باندې د لویو توپو او د باربردارۍ ګاډي تلل ناممکن وو. په دې ورځو کښې پنډۍ په قطبي هندوستان کښې ډیره لویه انګریزي چاونۍ وه او د کوهاټ نه دوه لارې کرمې ته تلې وے. له دې کبله د دې لارې جوړول په شتر ګردن باندې د فوځې پیش قدمۍ وړومبۍ پوړۍ وه. د دې نه پس هغهٔ د خوشحال ګړهـ په مقام باندې په دریائے سندهـ د کشتو د پُل ترلو حکم وکړو بیا هغهٔ کپتان کیویګنري او یو څو نور فوځي افسران ټل ته د دې غرض دپاره ولیږل چې هغوي په دې ځاے کښې یو مناسب او موزون مقام د فوځي کیمپ د لګولو دپاره خوښ کړي او د چارچاپیره علاقې نور مفصل حالات معلوم کړي. په هغه زمانه کښې د افغانستان پوله د کرمې تر سینده پورې وه. او د هغې نه نمر ختائهٔ ته د ټل مقام وهٔ.

په لږه موده کښې د پنډۍ او د کوهاټ په منځکښې د غوایانو د ګاډو او د ډاک د ګاډو آمدورفت شروع شو. د توپخانې د بوتللو دپاره یو لوے سړک د اټک او د کوهاټ په منځکښې تیار شو. دا سړک اوس هم شته مګر د آمدورفت دپاره عام نهٔ استعمالیږي. د دې نه پس هغهٔ د کمسریټ یولوے افسر د دې غرض دپاره کوهاټ ته واستولو چې د رسد رسانۍ یوه لویه انبار خانه قائم کړي او د دې سره سم دا حکم وکړو چې په پنډۍ کښې دې د سامان جنګ او د توپ خانې یوه لویه عظیم الشانه ذخیره جمع کړې شي. بیا لارډ لیټن کماندر انچیف ته حکم وکړو چې درې مکملې توپخانې، دوه کمپنۍ د سپرمینا، یو رجمنټ د ګوروؤ د رسالې او دوه دیسي رسالې او دوه رجمنټې د ګوروؤ پیاده او څلور رجمنټې د دیسي پیاده ؤ دې کوهاټ ته د روانیدو دپاره تیارې وساتلې شي. دا اهتمام خو لارډ لیټن د

افغانستان کل مشرقي محاذ د خپل فوځي زور لاندې د راوستو دپاره وکړو. اوس د افغانستان شمال مشرقي محاذ په خطره کښې د اچولو دپاره هغهٔ مهاراجه کشمير ته ترغيب ورکړو چې هغه دې خپل فوځونه د چترال په درو باندې وروړاندې کړي. لارډ ليټن په دې ورځو کښې پخپله په دوره د مادهوپور په مقام ديره وهٔ او د مهاراجه کشمير د طرف نه يوه جرګه د هغهٔ د سلامۍ دپاره راغلې وه. د مادهوپور نه وائسرائے پيښور ته راغلو او په دې ځائے کښې د هغهٔ او د کيويګنري په خپلو کښې ذاتي پيژندګلي وشوه.

په دې ځائے کښې کيويګنري (چې په پښتنو کښې د کمناري په نوم مشهور دے) د شخصيت متعلق يو څو فقرې ليکل مناسب دي ځکه چې د افغانستان په دويم لام کښې د هغهٔ د ذاتي اخلاقو، عادتونو او د سياسي رائې هم ډير دخل وهٔ. چونکې پښتانهٔ هغه عام طور سره د کمناري په نوم باندې پيژني مونږ به د هغهٔ دپاره د کمناري نوم استعمالوؤ.

د کمناري پلار فيرنګے او مور اټالين يعنې د اټلې د قوميت وه په دې ورځو کښې هغه د پيښور ډپټي کمشنر وهٔ. په طبيعت کښې او مزاج کښې هغه د سرحد د عام پوليټيکل افسرانو په شان بيحده ډير تندخويه، مغروره او د کبر نه ډک سړے وهٔ. او هر وخت د ذاتي شهرت او نوم په حاصلولو پسې وهٔ. په هر وخت او په هر کار کښې د هغهٔ کوشش په خلقو باندې رعب کښينول وو او چونکې د حکومت ټول طاقت او زور د هغهٔ په شا ولاړ وهٔ دا شان هيڅوک سړے نهٔ وهٔ چې د هغهٔ د دې بدو خويونو اصلاح ئې کړے وے. د هغهٔ خيالات او ارادې د هغهٔ د رتبې او د حيثيت نه ډيرې وچتې دي او په دې وجه د هغهٔ په هر کار کښې يو قسم تندي او تيزوالے موجود وهٔ. د خپل غرض د حاصلولو دپاره نهٔ هغهٔ چرې د بل چا زړهٔ ته کتل او نهٔ ئې چرې په هغه مشکلاتو غور کولو چې کوم به په هغې کښې پيښيدونکي وو. د لارډ ليټن او د هغهٔ په عام عادتونو کښې ډير کم فرق وهٔ. له دې کبله قدرتي طور هر کله چې دا دواړه کسان په پيښور کښې يو ځائے شول نو د هغوي د خبرو په يو بل اثر وشو. لارډ ليټن هغهٔ طرف ته دومره مائل شو چې د هغهٔ د لياقت او قابليت دلداده شو او بيا تر ډيرې مودې پورې هغه په سرحدي معاملاتو او د افغانستان په سياسي امورو کښې د کمناري په رائې چليدو. کرنل ايچ بي هنا د سيکنډ افغان وار مصنف په خپل کتاب جلد اول کښې د کمناري د شخصيت متعلق دا شان رائې ښکاره کوي:

"From Madhopur, Lord Lytton proceeded to Peshawar, where he made the acquaintance of Cavagnari, Deputy Commissioner, of that Distt, a man of rash and restless disposition and overbearing temper, consumed by the thirst for personal distinction, and as incapable of recognising and weighing the difficulties, physical and moral, which stood in the way of the attainment of his ends, as the Viceroy over whom he was thence forward to exercise so pernicious an influence."

د پيښور نه لارډ ليټن د سنده علاقې ته لاړو او په اتم دسمبر 1875ء ئې د خان

قلات پـه عهـدنـامه باندې دستخط وکړو. د هغه ځاے نه هغه کراچۍ او د کراچۍ نه بمبئ ته لاړو. او پـه اول جنوري 1876ء دهـلـي تـه راورسيـدو. او پـه هغـه ځاے کښې ئ د ملکۀ وکټوريه د "ملکه هند" د لقب اختيارولو په اعزاز کښې يو عظيم الشان دربار منعقد کړو. دې دربـار تـه هغۀ امير شير علي خان هم د هندوستان د نورو راجګانو په شان مدعو کړو ولې شير عـلـي خان لا خپل ځان داسې ماتحت نۀ ګڼلو لکه څرنګ چې د هندوستان راجګانو ګڼلو. له دې کبله هغۀ دې دربار ته د راتلو نه انکار و کړو.

مـونـږ وړومبـے ذکـر کـړے دے چې لارډ سالسبـري لارډ ليټن ته د هغۀ د تقررۍ په وخـت د افـغـانسـتـان او د بـلـوچستان متعلق يو تحريري هدايت نامه ورکړې وه. د بلوچستان متـعـلـق چـې څـۀ کـارروائي د دې هـدايـاتـو مـطابق کول وو د هغې تفصيل خو وشو. اوس د افغانستان متعلق چې کوم هدايات لارډ ليټن ته ورکړي شوي وو د هغې ذکر کول پکار دي. د دې هـدايـاتـو خـلاصـه دا ده چې لارډ ليټن دې سمدستي يو سفير امير شير علي خان ته د دې غرض دپاره وليږي چې هغه امير صاحب په افغانستان کښې د انګريزي ايجنسو د قائميدلو په تجويز باندې رضا کړي. لارډ سالسبري دا هم لارډ ليټن ته وليکل چې په ظاهره دې شير علي خـان ته د دې سفارت د ليږلو غرض دا وښودلې شي چې چونکې يو خو ملکۀ معظمه وکټوريه د هـنـدوسـتـان د رعـايا او د راجګانو په نسبت د ملکۀ هند لقب اختيار کړے دے او بله دا چې لارډ ليـټـن نوے وائسراے مقرر شوے دے. د دې دپاره دا سفير کابل ته ورځي چې هغه د دې دواړو واقعاتو باقاعده سرکاري اطلاع امير صاحب ته ورکړي او هرکله چې دا سفير کابل ته ورسـي نـو بيـا دې هـغه امير صاحب سره د انګريزي ايجنټانو د تقررۍ په سوال باندې خبرې اترې شروع کړي. په دې هداياتو کښې بيا لارډ سالسبري د دې مجوزه خبرو اترو نوعيت او طـريـقـه ښـودلې وه چې هرکله امير صاحب ته د دې انګريزي ايجنټانو د تقررۍ تجويز پيش شـي نو د هغې په عوض کښې دې د حکومت هند د طرف نه هغۀ سره صرف په لاندينې دريو مراعاتو باندې بحث مباحثه وشي:

☆ د يو مخصوص او د اول نه د يو لوے رقم په طور د ماجب امير صاحب ته ورکول.

☆ د عبدالله جان وليعهدي تسليمول.

☆ د يوې غوټې پريکړې او قطعي عهدنامې کول چې کۀ چرې يو بيروني حکومت په افغانستان باندې وبلوسيدو نو حکومت برطانيه به امير صاحب ته کافي امداد ورکوي.

دا درې واړه هغـه مـراعات وو چې لارډ نارتهـ بروک نور محمد شاه سره د شملې د کـانـفـرنـس په دوران کښې قطعي طور فيصله کولو نه ګريز کړے وۀ. اګر چې په مبهم الفاظو کښې ئ درې واړو خبرو سره د حکومت هند همدردي ظاهره کړې وه. لارډ سالسبري هم د دې درې واړو خبـرو متـعـلـق دا شـان هـدايـات جـاري کـړل چې په معنیٰ کښې د لارډ نارتهـ

بروک په وینا او د هغهٔ په وینا کښې څهٔ ډیر کم فرق معلومیدو. د ماجب متعلق هغهٔ وائسرا‌ے ته ولیکل چې اګر چې په دې معامله کښې اخري فیصله زهٔ ستا رائ ته پرېږدم مګر غالباً چې تهٔ به هم دا مناسب ونهٔ ګڼې چې د خپل حکومت د طرف نه د شیر علي خان غوندې بې اعتباره سړي سره د یو مستقل ماجب وعده وکړې.(لارډ نارتهـ بروک هم د یو خاص مقرر رقم د ورکولو د وعدې نه ګریز کړے وهٔ) د عبدالله جان د ولیعهدی د تسلیمولو متعلق هم هغهٔ لارډ لیټن ته دا قسم هدایات ورکړل چې د لارډ میو او د لارډ نارتهـ بروک په الفاظو کښې او د لارډ لیټن په مجوزه اقرار کښې هیڅ بین فرق نهٔ ښکاره کیدو او نهٔ د هغې په ذریعه حکومت هند دا ذمه داري په سر اخسته چې هغوي به د عبدالله جان د دعوې په تائید کښې هغهٔ له څهٔ امداد ورکوي. د دریمې معاملې متعلق سالسبري لارډ لیټن ته ولیکل چې په دې معامله کښې دې وائسرا‌ے شیر علي خان سره په داسې الفاظو کښې عهدنامه وکړي چې د هغې په ذریعه په حقیقت کښې خو د لارډ نارتهـ بروک د تحریري وعدو نه څهٔ زیاتي ذمه واری په حکومت برطانیه باندې رانشي ولې د لارډ نارتهـ بروک په تحریر کښې دې دا رنګ ردوبدل وکړې شي چې د شیر علي خان د زړهٔ بدګماني په هغې کښې لرې شي. په نورو الفاظو کښې د وزیر هند دا منشا وه چې امیر صاحب خو دې انګریزي ایجنټان په خپل ملک کښې د انګریزي اقتدار د زیاتولو او د انګریزي مفادو د حفاظت دپاره دیره کیدو ته پرېږدي ولې لارډ لیټن دې حتي الوسع شیر علي خان سره د هغه اقرارونو نه څهٔ زیاتي دا قسم اقرار نهٔ کوي چې د هغې په ذریعه په حکومت هند باندې بوج او ذمه واري د وړومبے نه زیاته شي. او د شیر علي خان په زړهٔ باندې دې هسې په زباني الفاظو او د زړو اقرارونو په الفاظو کښې د ردوبدل کولو په ذریعه دا قسم اثر پیدا کړي چې هغه دا وګڼي چې حکومت هند ما سره ډیره مهرباني کوي چې د انګریزي ایجنټانو د تقرری په عوض کښې هغوي زما هغه زاړهٔ مطالبات ټول منظوروي چې کوم لارډ نارتهـ بروک نامنظور کړي وو. ولې امیر شیر علي خان دومره بې وقوف او ناپوهه نهٔ وهٔ چې هغه صرف د لفظونو په ردوبدل او د زړو اقرارونو د شکل په تبدیلی باندې غولیدے شو. شیر علي خان یو ډیر هوښیار زیرک او زمانه شناس پښتون وهٔ. دې کښې شک نشته چې هغهٔ دا غوښتل چې انګریزان دې ماله یو معقول رقم سالانه په طور د ماجب راکوي. د دې دپاره چې زهٔ به د خپل ملک سرحدونه او اندروني انتظام مضبوطوم. مګر په دې معامله کښې د انګریزانو او د هغهٔ په زاویهٔ نګاه کښې د زمکې او د اسمان فرق وهٔ. د هغهٔ دا رائ وه چې افغانستان د روس او د هندوستان په منځکښې د یو دیوال کار ورکوي او هر څومرَه چې دا دیوال سالم او مضبوط وي هغه هومره انګریزانو ته فائده ده. له دې کبله انګریزانو له پکار دي چې هغوي ماله د دې ټول دیوال د حفاظت او د هغهٔ د بیروني او اندروني خطرو نه د ساتلو دپاره د هر قسمه مالي او فوځي امداد راکوي. د

بیروني خطرې متعلق هغهٔ دا وئیل چې د روس برخلاف دې انګریزان ما سره یوه صفا او غیر مشکوکه عهدنامه په دې طریقه وکړي چې کهٔ چرې روس په افغانستان حمله وکړه نو انګریزان به هغه خپل دشمن ګڼي او ما ته به هغوي د هر قسم امداد راکوي. د اندروني امن د قائمولو دپاره هغهٔ د فیرنګیانو نه دا مطالبه کوله چې تاسو زما مقرر شده د جانشینانو سلسله تسلیم کړئ. او دا اقرار وکړئ چې زما د دې جانشینانو برسر حکومت ساتلو دپاره به تاسو هغوي له هر قسم مالي مدد ورکوئ. د دې قسم اقرار به دا اثر وي چې کوم خلق ما نه د بغاوت کولو اراده لري یا په ملک کښې د فساد د پیدا کولو کوشش کوي هغوي به بیا زما د تسلیم شوي جانشین برخلاف د پاسیدو جرأت نهٔ کوي او دغه شان به د خانه جنګو سلسله د همیش دپاره ختم شي. ولې دې ټولو خبرو سره هغهٔ دا هم غوښتل چې د دې رعایتونو په بدل کښې دې انګریزان زما په خانګي او اندروني معاملو کښې هیڅ دخل نهٔ ورکوي او نهٔ دې انګریزي ایجنټان او ریزیډنټان په افغانستان کښې مقررېږي. هغه د دې په عوض کښې صرف دې خبرې منلو ته تیار وهٔ چې د افغانستان خارجه پالیسي دې د انګریزانو په لاس کښې وي. د انګریزي ایجنټانو او ریزیډنټانو د تقررۍ نه خو د هغهٔ دا یقین وهٔ چې زما د ملک خودمختاري او د پښتون قوم ازادۍ ته سخته خطره ده او د دې ازادۍ د ورکولو دپاره هغه په هیڅ صورت کښې هم تیار نهٔ وهٔ. او نهٔ هغهٔ ځان د هندوستان د نوابانو او راجګانو درجې ته راغورځولو. د دې برخلاف لارډ سالسبري او لارډ لیټن نهٔ صرف دا غوښتل چې د افغانستان او د هغې د خلقو ازادي دې د انګریزي ایجنټانو او ریزیډنټانو د تقررۍ په ذریعه بالکل سلب کړو. او د امیر صاحب نه دې د هندوستان یو بیوسه راجه او نواب جوړ کړو. بلکې د دې په عوض کښې هغوي امیر صاحب له سیوا د هغه زړو اقرارونو نه بل هیڅ څیز هم زیاتي نهٔ ورکولو او په کومې زبردستۍ چې هغوي د هغهٔ نه دا مطالبات کول د هغې اندازه د لارډ سالسبري د هدایت د دې فقرې نه کیدے شي :

" If the language and demeanour of the Amir be such as to promise no satisfactory result of the nogotiations thus opened, His Highness should be distinctly reminded, that he is isolating himself, at his own peril, from the friendship and protection it is his interest to seek and deserve."

ترجمه : کهٔ چرې د امیر د الفاظو او د هغهٔ د رویې نه دا شان معلومیده چې د دې خبرو اترو نتیجه څهٔ تسلي بخش نهٔ ده نو هز هائي نس ته دې دا خبره په ښهٔ شان سره واضحه کړې شي چې کهٔ چرې تا خپل ځان د هغې دوستۍ او د هغې حفاظت نه وویستو چې په کومه کښې ستا ښیګړه ده او کوم چې پکار دے چې تاته درکړې شي نو دا به تهٔ د خپله لاسه ځان په تباهۍ کښې وراچوے".

د دې الفاظو نه صفا ښکارې چې لارډ سالسبري امیر صاحب ته دا واضح کول

غوښتل چې کۀ چرې تا زمونږ دا شرطونه په ځان باندې تسليم نۀ کړل نو په دې کښې ستا وجود تـه هم خطره ده. د مجوزه ايجنټانو د کارګزارۍ متعلق لارډ سالسبري دا شان هدايات پخپله تحريري هدايت نامه کښې درج کړي وو:

☆ د ملکۀ معظمه ايجنټانو ته به د افغانستان په سرحداتو باندې هر يو ځاے ته د تلو مکمل اختيار وي.

☆ دې ايجنټانو ته به امير صاحب سره په ټولو معاملاتو کښې چې کومې دواړو حکومتونو دپاره د فائدې وي د خفيه خبرو کولو کافي ذرائع او وسائل حاصل وي.

☆ دې ايجنټانوته به دا حق حاصل وي چې د هغوي په دوستانه نصيحتونو دې امير صاحب جائزه توجه وکړي.

☆ امير صاحب دې صاف طور سره په دې خبره پوهه کړې شي چې د افغانستان ټولې علاقې چې د چا د حفاظت دارومدار به انجام کار په انګريزي طاقت وي. په هغه ټولو علاقو باندې به د ملکې معظمې هغه افسران يا نور خلق چې چا له حکومت برطانيه د دې خبرې دپاره باقاعده اجازت ورکړې د ګرځيدو نه نۀ بنديږي البته د دې افسرانو په ليږلو کښې به د افغانستان د ملک د عام حالاتو او د افغانستان د خلقو د عاداتو او د خوئ جائز لحاظ ساتلے شي.

داهغه مطالبات وو چې حکومت برطانيه د امير شير علي خان نه د دې غرض دپاره کول چې د لارډ سالسبري په خيال کښې کښې کومه سردمهري چې د شملې کانفرنس نه پس د حکومت افغانستان او د حکومت برطانيه په منځکښې پيدا شوې وه هغه لرې شي او دا دواړه حکومتونه د دوستۍ په رشته کښې د وړومبي نه زياتې راجوخت شي. مګر څۀ وخت چې دا خبره مدنظر وساتلې شي چې د دې نه وړومبے شير علي خان د فيرنګيانو د نيک نيت متعلق دومره بدګمان وۀ چې هغۀ د يو انګريزي سفير کابل ته د راتلو نه او د يو انګريزي افسر (کرنل ويلنټائن بيکر) د افغانستان په علاقه کښې د تيريدو نه انکار کړے وۀ او په دې انکار باندې د لارډ نارتهـ بروک حکومت چپ پاتې شوے وۀ نو داسې به کوم د عقل خاوند وي چې په دې باور وکړي چې د دې خبرو نتيجه به کاميابه وي او د افغانستان او د حکومت برطانيه تعلقات به د وړومبے نه ښۀ شوي وو. اوس خو د يو انګريزي سفير په ځاے لارډ سالسبري دا غوښتل چې په هر يو سرحدي مقام باندې انګريزي ايجنټان مقرريږي. او بيا به دې ايجنټانو ته په افغانستان کښې هر چرته چې د هغوي خوښه وي په ازادۍ سره د ګرځيدو او د فوځي ملاحظې کولو اختيار وي. او هر څۀ راځ چې هغوي امير صاحب ته د هغۀ د فوځ او د سرحدي مقاماتو د تحفظ په حقله ورکوي هغه به امير صاحب قبلوي.

# لسم باب

د لارډ لیټن کلکتې ته واپسي او د سالسبري په هدایاتو د عمل ګوابش، امیر شیر علي خان ته خط، د حکومت هند وکیل عطا محمد خان په ذریعه د دباؤ نه ډک خط د عطا محمد شملې ته، د پیښور کمشنر سر لوئي پیلي او وائسرائے هند سره ملاقات، د شیر علي خان ډیره صفائي، د وائسرائے هند لارډ لیټن امیر صاحب ته خپل شرطونه وړاندې کول، د امیر صاحب د انګریزي شرطونو نه انکار، نور محمد شاه صدر اعظم افغانستان د حکومت هند د نمائنده سر لوئي پیلي سره په پیښور کښې ملاقات، د حکومت د نمائنده په امیر شیر علي خان باندې غلط الزامات لګول، د نور محمد شاه وفات، د خبرو اترو پریکون، په قندهار او هرات د انګریزانو د پیش قدمۍ تجویزونه، د امیر شیر علي خان جوابي کارروائي خو په یورپ کښې د روس او د انګریزانو د ناچاقي په وجه وائسرائے ته د خاموش پاتې کیدو هدایات راتلل.

په پنځم اپریل 1876ء لارډ لیټن د خپلې وړدې دورې نه پس کلکتې ته راورسیدو او په پنځم مئ هغهٔ د لارډ سالسبري په هدایاتو باندې عمل شروع کړو. چنانچه هم په دغه ورځ د پیښور کمشنر سر رچرډ پالک د لارډ لیټن په وینا امیر شیر علي خان ته یو خط ولیکلو چې د لارډ لیټن دا اراده ده چې هغه یو انګریزي افسر سر لوئي پیلي کابل ته د دې غرض دپاره درولیږي چې یو خو هغه د نوي وائسرائے د آمد اطلاع باقاعده طور تا ته درکړې او بله دا چې تاسو د دې نه خبر کړي چې ملکهٔ وکټوریه په خپلو زړو لقبونو کښې د ملکهٔ هند لقب هم زیات کړو. دا هغه دروغ وو چې لارډ سالسبري لارډ لیټن ته ښودلي وو او په دې بهانه هغوي امیر صاحب نه د یو انګریز سفیر کابل ته د تلو اجازت حاصلولو. مګر امیر شیر علي خان دومره ناپوهه سړے نهٔ وهٔ چې په دې دروغو او بهانو د هغهٔ مازغهٔ نهٔ رسیدهٔ. هغه فوراً د دې خبرې په اهمیت او په اصلي غرض پوهه شو. او په عام دربار کښې ئې د بحث او د مشورې دپاره پیش کړهٔ. د امیر صاحب سردارانو بیا هغه زاړهٔ اعتراضات د دې تجویز برخلاف پیش کړل چې کوم هغوي وړومبے د لارډ نارتهـ بروک په زمانه کښې پیش کړي وو او هغه دا وو چې:

"زمونږ قوم بې علمه دے ممکن ده چې د اولس خلق صاحبانو ته نقصان ورسوي، او کهٔ چرې هغوي ته نقصان ورسیدو یا هغوي بې عزته شو نو بیا به ټول افغانستان تهٔ خطره پیښه شي. د دې نه علاوه کهٔ چرې دا انګریزي افسر څهٔ دا قسم مطالبات وکړي چې امیر صاحب د هغې منلو ته تیار نهٔ وي نو انګریزي حکومت به ضرور ناراض کیږي او کوم ښهٔ تعلقات چې دا وخت د افغانستان او حکومت انګریزي په منځکښې موجود دي هغه به برباد شي. بله دا چې کهٔ چرې امیر صاحب انګریزي سفیر ته د راتلو اجازت ورکړو نو بیا به هغه روسي سفیر له هم

خامخا د راتلو اجازت ورکوي." دا خو زباني خبرې وے چې په دربار کښې د بحث مباحثې په دوران کښې وشوې ولې کوم سرکاري جواب چې امير صاحب په دويشتمه مۍ د پېښور د کمشنر د خط ورکړو په هغې کښې امير صاحب صرف دومره وليکل چې "زۀ د دې خبرې په اوريدو ډير خوشحاله شوم چې لارډ ليټن نوي وائسرائے تشريف راوړے دے. او زۀ اميد کوم چې کومه دوستي او اتحاد چې په دواړو حکومتونو کښې د ډيرې مودې نه راغلے دے هغه به نور هم مضبوط او مستحکم شي. د نورو سياسي خبرو متعلق زما دا خيال دے چې کومې خبرې په شمله کښې شوي دي هغه بالکل کافي شافي دي او کومې معاملې چې فيصله شوي دي په هغې باندې نورې خبرې اترې کول غير ضروري دي. ولې کۀ چرې حکومت انګريزي حکومت خدا داد افغانستان ته د څۀ نورې ښيګړې رسولو اراده لري نو صرف دومره قدرې يوه اشاره دې وکړي نو بيا به زۀ خپل يو اعتباري ايجنټ درواستوم چې هغه خپل ځان د حکومت انګريزي په منشا باندې پوهه کړي او بيا ماته هغه ښکاره کړي او زۀ به د غور و فکر نه پس بيا د هغې جواب په تحرير کښې درکړم. د امير صاحب دې خط دا خبره لارډ ليټن ته صفا ښکاره کړه چې د سر لوئي پيلي کابل ته راتلل د هغې خبرې دپاره هرګز نۀ دي چې کوم د پالک په خط کښې ليکلي دي. بلکې د هغۀ د راتلو اصل مدعا څۀ نور څۀ ضروري خبره ده چې انګريزان ئې د خپلې فائدې دپاره په ما منل غواړي ولې چونکې زۀ د هغې منلو ته تيار نۀ يم نو هغه دې نۀ راځي. هغه پوهه وۀ چې لوے لوے حکومتونه خپل سفارتونه بل ملک ته د دومره وړو وړو او رسمي معاملو د اطلاع دپاره نۀ استوي. لارډ ليټن هم د هغۀ په جواب کښې پوهه شو او اوس ئې په هغۀ باندې د رعب اچولو کوشش وکړو. هغۀ په جولائي 1876ء کښې د کمشنر پيښور په لاس شير علي خان ته وليکل چې زۀ ډير افسوس کوم چې امير صاحب د يو دوستانه مشن د قبلولو نه انکار وکړو او غالباً چې د دې انکار وجه دا ده چې زما د اصلي مدعا متعلق هغۀ ته څۀ غلط فهمي ده. مزيد لارډ ليټن سر آر پالک ته وليکل چې تۀ شير علي خان په دې خبره خبردار کړه چې کۀ چرې دا وخت د جلدۍ نه زما د دوستۍ لاس چې کوم درته دروړاندې کړے دے قبول نۀ کړو نو کوم نيک نيت چې زما تا سره د نورو ښيګړو کولو دے هغه به بالکل پاتې شي. او زۀ به مجبوراً دا خيال وکړم چې افغانستان يو دا شان حکومت دے چې هغۀ عمداً او قصداً د حکومت برطانيه د دوستۍ نه ځان جدا وساتلو. د لارډ ليټن دا خط څومره د منافقت نه ډک دے. د امير شير علي خان په سر باندې د انګريزي افسرانو او د ايجنسو مقررول ښکاره په ښکاره د افغانستان ازادي تباه کول وو. په دې تجويز کښې شير علي خان له د کوم قسم دوستۍ لاس ورکول وو او هغۀ ته په دې کښې کومه نفع او فائده وه. ولې لارډ ليټن هسې په خوږو پستو خبرو او د خيالي او فرضي ښيګړو په طمع ورکولو شير علي خان دې تجويز منظورولو ته مائل کول

غوښتل. چونکې هم په دې قسم دوکو او فريبونو او سياسي چالونو ټول هندوستان فيرنګيانو لاندې کړے وۀ نو شير علي خان ته هم د هندوستان د راجګانو او نوابانو نقشه په وړاندې وه. له دې کبله هغۀ په فريب او په چالبازو د خپل ملک او قام ازادي د خپله لاسه نۀ شوه غورځولے بلکې هر وخت دې ته تيار وۀ چې په ميدان جنګ کښې او د تورې او ټوپک په زور خپله ازادي وساتي.

د لارډ ليټن د هدايت مطابق سر رچرډ پالک عطا محمد خان وکيل مقيم کابل ته وليکل چې د وائسراے دا منشا ده چې امير شير علي خان ته ووايه چې د انګريزي سفارت د راتلو برخلاف کوم کوم اعتراضات چې د هغۀ د دربار سردارانو پيش کړي دي هغه ټول بې بنياده دي. دا د وائسراے يقين دے چې امير صاحب د انګريزي سفير تر کابل پورې په ښۀ شان سره حفاظت کولے شي. د دربار د خلقو دا خيال چې شايد چې انګريزي سفير به د امير صاحب نه دا قسم مطالبات وکړي چې هغه به د امير صاحب د حکومت د مفادو نه خلاف وي. نو دا خبره صرف د عام خلقو د افواګانو او د وران کارو چغلو نتيجه ده او تر کومه پورې چې امير صاحب د هغې موقعو نه فائده وچته نۀ کړي چې کومې حکومت برطانيه هغۀ ته د صفا خبرو اترو کولو او د خپلې منشا د ظاهرولو دپاره ورکوي. او تر کومه پورې چې هغه د دې موقعو په ذريعه د حکومت برطانيه په نيک نيتۍ باندې ځان واقف نۀ کړي تر هغه پورې به هغه دې افواګانو او چغلو نه ضرور متاثر کيږي او په غلطو کښې به پريوځي. په اخر کښې پالک عطا محمد خان ته وليکل چې امير صاحب په دې خبره ښۀ پوهول پکار دي چې کۀ چرې امير صاحب بدستور د وائسراے د سفير کابل ته د تلو اجازت نۀ ورکوي نو هر څۀ نتيجه چې د هغې راووته د هغې ټوله ذمه واري به د حکومت افغانستان په سر وي.

لارډ ليټن د امير شير علي خان د ويرولو کوشش نۀ صرف د پالک او د عطا محمد خان په ذريعه وکړو بلکې هغۀ نورو انګريزي افسرانو ته چې د چا افغانستان کښې د امير صاحب د سردارانو او هغۀ سره پخپله پيژندګلي وه هم هدايات ورکړل چې هغوي دې بيل بيل سردار ته خطونه وليکي او په دې معامله کښې د حکومت هند چې کوم قسم خيالات دي هغه دې ورته ښکاره کړي. او د خپل ځان د طرف نه دې هغوي ته وليکي چې حکومت هند د دې تجويزونو په ذريعه حکومت افغانستان ته د خپل اندروني او بيروني استحکام دپاره يوه نادره موقع ورکول غواړي پس مناسب دي چې د هغې نه فائده واخستې شي.

باوجود د دې ټولو کوششونو نه امير صاحب پالک ته وليکل چې زۀ ستا د خط په مضمون ښۀ پوهه شوم قبل د دې نه ما وائسراے ته ليکلي وو چې په ځاے د دې چې انګريزي سفير کابل ته راشي نو زما يو سفير به وائسراے له لاړ شي مګر چونکې حکومت برطانيه دې تجويز منلو ته تيار نۀ دے په دې وجه زۀ اوس دا تجويز کوم چې يا خو دې انګريزي نمائنده د

حکومت افغانستان یو نمائنده سره د دوارو ملکونو په سرحد باندې ملاقات وکړي چې هغوي یو بل ته د خپل خپل حکومت خیالات ښکاره کړي او یا دې د حکومت هند وکیل مقیم کابل ته د هندوستان د راتللو اجازت وشي چې هغه ذاتي طور زما خواهشات وائسرا‌ے ته پیش کړي د امیر صاحب دا اخري تجویز وائسرا‌ے منظور کړو. او امیر صاحب ته ئ ولیکل چې وکیل دې زر راشي ځکه چې وائسرا‌ے په لسم اکتوبر د کشمیر او د شمال مغربي سرحدي صوبه جاتو په طرف په دوره روانیدو ته تیار دے. چنانچه عطا محمد خان په شپږم اکتوبر شملې ته ورسیدو او په اووم اکتوبر هغهٔ سر لوئي پیلي ته په دوران گفتگو کښې ووئیل چې د امیر شیر علي خان خواهشات دا وخت هم هغه دي چې کوم هغهٔ په خپله لارډ میو ته په کال 1869ء کښې او لارډ نارتهـ بروک ته په کال 1873ء کښې پیش کړي وو. د دې نه پس عطا محمد خان هغهٔ ته د شیر علي خان د خفگان ټول اسباب بیان کړل. او هغه دا وو:

☆ د سیستان د حدبندۍ د کمیشن فیصله.

☆ کومې کارروایۍ چې اوس اوس حکومت هند په بلوچستان او قلات کښې کړي دي.

☆ د لارډ نارتهـ بروک د یعقوب خان په حق کښې دخل ورکول.

☆ د حکومت هند د واخان میر ته د امیر صاحب د علم نه یا د منظورۍ نه تحفې تحائف استول.

☆ امیر صاحب پخپله ذاتي طور باندې د شملې د کانفرنس په نتیجه باندې خفه دے او په دې هم خفه دے چې په شمله کښې او د سیستان د کمیشن په وخت کښې نور محمد شاه د هغهٔ سفیر سره بعضو فیرنگي افسرانو د سپکاوي سلوک کړے دے.

☆ امیر صاحب په دې هم ناراض شوے دے چې د پیښور کمشنر پخپل یو خط کښې د هغهٔ د مشیرانو دپاره څهٔ ښهٔ الفاظ نهٔ دي استعمال کړي.

☆ امیر صاحب د حکومت برطانیه په سیاسي پالیسۍ باندې بالکل بې اعتباره دے او وائي چې انگریزان صرف خپله فائده لټوي او د افغانستان مفاد شا ته غورځوي.

☆ د شملې د کانفرنس نه پس د امیر صاحب په دې خبره یقین راغلے دے چې سره د دې حکومت برطانیه په افغانستان کښې پولیټیکل ایجنټان مقررول غواړي او بیا د هغوي په ذریعه هغه ماته زما د پالیسۍ متعلق مشوره راکوي مگر د هغې په عوض کښې هغوي ما سره په یو خاص طرز عمل باندې د چلیدو اقرار نهٔ کوي.

د دې نه پس عطا محمد خان سر لوئي پیلي ته هغه ټول اعتراضات پیش کړل چې کوم امیر صاحب د انگریزي مشن کابل ته د راتللو برخلاف هغهٔ ته بیان کړي وو. امیر صاحب عطا محمد خان ته وئیلي وو چې په کومه جابرانه طریقه د لارډ لیټن منشا د دې مشن د

راوستو ده په هغې زما او د فيرنگيانو تعلقات هيچرې هم نشي ښۀ کيدے. دا هم امير صاحب هغۀ ته وئيلي وو چې کۀ چرې دا مشن عارضي طور هم کابل ته راشي نو ډيره ممکن ده چې په بعضې قبائلو کښې څۀ جوش پيدا شي او انگريزي سفير ته څۀ نقصان پيښ شي بل ما سره دا هم ويره ده چې هسې نه چې دا عارضي مشن بيا د مستقل مشن په شکل کښې تبديل شي. (د امير شير علي خان دا ويره بالکل په ځاے وه ځکه چې د لارډ ليټن منشا هم دا وه چې بالاخر به دا عارضي مشن د مستقل مشن په شکل کښې بدلوم او ځاے په ځاے به سرحدي مقاماتو کښې پوليټيکل ايجنسي قائموم) او دا هم ما سره ويره ده چې کۀ چرې انگريزي سفير يو ځل په کابل کښې مقيم شو نو کوم خلق چې ما نه ناراض دي نو هغوي به د خپلو شکايتونو او فريادونو ځاے دا سفير بياومي او ورو ورو به زما په ملک کښې بې چيني او بې رعبي پيدا کيږي. دا عطا محمد خان د شير علي خان شکايتونه او گيلې بيان کړې ولې دې سره هغۀ سر لوئي پيلي ته دا اطمينان ورکړو چې د امير صاحب په زړۀ کښې دا شک بالکل نشته چې حکومت برطانيه به زما د ازادۍ يا زما نه د يوې علاقې د شوکولو دپاره روس سره زما برخلاف سازش وکړي. (حالانکې لارډ ليټن د خپل عهد حکومت په وړومبي کال کښې د کرمې او د شتر گردن د علاقو د اخستو تجويز پخپل زړۀ کښې جوړ کړے وۀ او د هغې دپاره ئ عملي قدمونه هم وچت کړي وو.)

د روسي ايجنټانو کابل ته د راتلو متعلق عطا محمد خان سر لوئي پيلي ته ووئيل چې دې کښې شک نشته چې څۀ روسي ايجنټان راغلي وو مگر په هغوي کښې يو کس خو رخصت شوے دے او کوم دوه کسان چې پاتې شوي دي هغوي بالکل بې حيثيته سړي دي.

نوټ: (د شملې د کانفرنس نه پس څۀ روسيان کابل ته راغلي وو او کومې چيټۍ چې هغوي خان سره راوړې وې هغه ټولې چيټۍ عطا محمد خان پخپل لاس حکومت هند ته د امير صاحب د طرف نه راليږلې وې. او حکومت هند په هغې کښې هيڅ څيز قابل اعتراض نۀ وۀ گڼلے. چنانچه عطا محمد خان د خپلو خبرو اترو په دوران کښې دا خبره سر لوئي پيلي ته واضحه کړه چې د دې روسي ايجنټانو په راتلو باندې امير صاحب بالکل رضا نۀ دے. مگر باوجود د دې لارډ ليټن د دې ايجنټانو د راتلو نه دا نتيجه اخذ کړه چې امير شير علي خان روسيانو سره خپل تعلقات قائمول غواړي. دا هغه د شرمخ او د گډې قصه ده.)

د افغانستان د اندروني حالاتو متعلق عطا محمد خان سر لوئي پيلي ته دا ووئيل چې په ټول ملک کښې چارچاپيره بالکل امن و امان دے او د اندروني فساد هيڅ قسم انديشه نشته. د يعقوب خان پره بالکل ماته شوې ده مگر د هغۀ په سبب شير علي خان د کابل نه وتل نۀ غواړي او هم دغه وجه ده چې هغه د يو انگريزي سفير د استقبال دپاره خپل صدر مقام پريښودو ته تيار نۀ دے. د دې نه علاوه امير شير علي خان دا خپله بې عزتي گڼي چې هغه دې

یو انګریزي سفیر سره د ملاقات کولو دپاره کابل خوشے پرېږدي.

په لسم اکتوبر وائسرائے عطا محمد خان سره ملاقات وکړو او عطا محمد خان هغهٔ ته هغه ټول واقعات بیان کړل چې کوم هغهٔ وړومبے سر لوئي پیلي ته بیان کړي وو. لارډ لیټن کومې خبرې چې عطا محمد خان ته د امیر شیر علي خان په جواب کښې وکړې هغه ډیرې دلچسپې دي. او د لارډ لیټن د زړهٔ خیالات په اصلي رنګ کښې برسیره کوي. لارډ لیټن عطا محمد خان ته ووئیل چې امیر شیر علي خان په دې خیال کښې خوشحاله پروت دے چې کهٔ چرې یو بیروني طاقت په هغهٔ باندې حمله وکړه نو حکومت برطانیه به د خپلو مفادو د حفاظت دپاره خامخا هغهٔ له امداد ورکوي مګر هغه په دې نهٔ پوهیږي چې هغه په دې غلط خیال ځان یوې سختې خطرې ته ورغورځوي. دې کښې شک نشته چې تر کومه پورې هغه زمونږ دوست او وفادار ملګرے وي تر هغې پورې به مونږ نهٔ صرف د خپلو فائدو دپاره بلکې د خپل غیرت دپاره هم د هغهٔ د سلطنت حفاظت کوؤ. مګر څهٔ وخت چې مونږ ته د هغهٔ په اخلاص کښې څهٔ شک پیدا شو او یا مونږ ته د هغهٔ په دوستۍ کښې څهٔ عملي فائده معلومه نشوه نو هغه وخت به مونږ د هغهٔ برخلاف شو. حکومت برطانیه صرف هغه خلقو له امداد ورکولے شي چې څوک د هغې امداد قدر کوي. او کوم امداد چې دا وخت امیر صاحب زمونږ نه د قبلولو دپاره تیار او خواهشمند نهٔ دے هغه امداد د هغهٔ نور مخالفین هر وخت قبلولو ته تیار ناست دي. د افغانستان د ازادۍ برقرار ساتلو کښې زمونږ مدعا صرف دا ده چې مونږ خپل سرحد محفوظ وساتو. نو څهٔ وخت چې مونږ ته دا معلومه شي چې افغانستان زمونږ دوست نهٔ دے او یا هغه په مضبوطوالي سره زمونږ په ملګرتیا کښې ولاړ نهٔ دے نو بیا دا شان کوم څیز دے چې هغه مونږ د خپل سرحد د حفاظت دپاره روس سره د دا قسم روغې کولو نه منع کړي. چې د هغې په ذریعه د افغانستان ټول ملک هډو د نقشې نه ورک شي. پس کهٔ چرې امیر صاحب فوراً مونږ سره څهٔ فیصله کول نهٔ غواړي نو روس مونږ سره د فیصلې دپاره تیار دے. او روس افغانستان د منځ نه ورکول غواړي. په موجوده واقعاتو کښې حکومت برطانیه قبل د دې نه چې یو روسي سپاهي هم کابل ته راورسیږي افغانستان ته بیشانه ډیر فوځونه راوستې شي. نو کهٔ چرې امیر زمونږ دوست وي نو دا ټول فوځي طاقت به مونږ د هغهٔ نه چارچاپیره لکه د وسپنې د کړې پشان واچوؤ ولې کهٔ چرې هغه زمونږ دشمن شي نو دا فوځي طاقت به هغه لکه د شرغشي مات کړي. یا به زمونږ موجوده تعلقات افغانستان سره ښهٔ کیږي یا به ورانیږي. زهٔ خو به د هغې د ښهٔ کولو کوشش کوم ولې زهٔ د دا قسم سرحداتو د حفاظت ذمه وارۍ اخستو ته تیار نهٔ یم چې د هغې نګراني زهٔ د خپلو افسرانو په ذریعه نشم کولے چونکې زمونږ او د افغانستان تعلقات مشکوک دي په دې وجه ممکن ده چې امیر صاحب انګریزي ایجنټانو له په افغانستان کښې د داخلیدو اجازت ور نکړي ځکه چې عام

خلق به دا خیال کوي چې دا ایجنټان حکومت هند د دې دپاره افغانستان ته رالیږي چې امیر صاحب ویروي. او په هغهٔ باندې رعب واچوي یا به هغوي زما د ملک ملاحظه وکړي او یا به هغوي د امیر صاحب مخالفین هغهٔ ته راپاڅوي. ولې کهٔ چرې د انګریزي ایجنټانو د تلو نه وړومبے یو دا شان اعلان دنیا ته وکړ ې شي چې حکومت برطانیه به د امیر صاحب د دوستانو دوست او دشمنانو دشمن وي نو دا قسم اعلان به د امیر صاحب دپاره ګومره سودمن وي. او د هغهٔ د رعیت په خلقو به ښنګه ښهٔ اثر وشي. په موجوده حالت کښې د خالي خزانې له کبله او په عامو خلقو کښې د بې اطمینانۍ او د یعقوب خان د بغاوت په سبب امیر شیر علي خان ته دا وخت ډیر مشکلات پیښ دي. او سره د دې د هغهٔ دا دعویٰ ده چې زهٔ د روس او د انګلستان په منځکښې تول برابر ساتم. او نهٔ د یو ماتحت یم او نهٔ د بل. حالانکې د هغهٔ حیثیت صرف د خاورې د یوې کټوی دے چې د وسپنې د دوؤ دیګچو په منځکښې پرته وي.

لارډ لیټن بیا عطا محمد خان ته ووئیل چې تهٔ امیر شیر علي خان ته ووایه چې د انګریزانو دا طریقه ده چې په تحریري عهدنامو کښې هغوي چرې ردوبدل نهٔ کوي ولې لا تراوسه پورې مونږ امیر صاحب سره صرف زباني خبرې اترې کړي دي او کومې چیټۍ چې لارډ میو هغهٔ ته ورکړي دي هغو ته عهدنامه نشي وئیلے. ولې اوس مونږ هغهٔ له د یوې غوټې پریکړې عهدنامې د کولو موقع ورکوؤ چې د هغې په ذریعه به هغه د کابل په تخت په دا شان مستقل شي چې بل یو امیر به هم چرې دا شان نهٔ وي شوے. اوس حکومت هند د دې خبرې اقرار کولو ته تیار دے چې کهٔ چرې یو بیروني حکومت بلا وجه د امیر صاحب په سلطنت باندې د حملې نیت وکړو نو مونږ به هغهٔ له د سړو، د ټوپکو او د روپو امداد ورکوؤ په شرط د دې چې د امیر صاحب رضا وي. نو مونږ به في الحال هرات او د افغانستان نور سرحدي مقامات د هغهٔ دپاره مستحکم او مضبوط کړو او د هغهٔ د فوځ د تنظیم دپاره به هغهٔ له خپل افسران ورکړو. د دې نه علاوه به مونږ هغهٔ له څهٔ سالانه ماجب هم مقرر کړو چې د هغې مقدار به د دواړو حکومتونو نمائنده ګان فیصله کړي. او عبدالله جان به هم د هغهٔ جانشین تسلیم کړو. د دې عنایاتو په عوض کښې مونږ د هغهٔ نه بل هیڅ څیز نهٔ غواړو سیوا د دې نه چې یو خو دې هغه نهٔ په خپلو ګاونډیانو کښې چا له اشتعال ورکوي او نهٔ دې په هغوي حمله کوي او بله دا چې امیر صاحب دې بغیر زمونږ د علم نه یو بیروني حکومت سره هم بالخصوص روس سره آمدورفت نهٔ ساتي. دریمه دا چې هغه دې انګریزي ایجنټانو له په هرات او د افغانستان په نورو سرحدي مقاماتو کښې د وسیدو اجازت ورکړي. څلورمه دا چې د انګریزي او افغان افسرانو یوه مشترکه کمیشن دې د هغهٔ د پوله بندۍ دپاره مقرر شي. پنځم دا چې د افغانستان په لویو لویو لارو دې د ازاد تجارت دپاره امیر صاحب انتظام وکړي

او په هغو لارو دې تار هم بوځي. شېرم دا چې ټولو انګرېزانو له دې خواه هغوي سرکاري ملازمان وي يا غير ملازمان په افغانستان کښې په ازادۍ سره د ګرځېدو اجازت ورکړې شي او تر کومه چې ممکن وي نو د هغوي د حفاظت انتظام دې هم امير صاحب وکړي اګر چې حکومت انګرېزي به هغه د اتفاقي واقعاتو دپاره ذمه وار نۀ ګڼي. اووم دا چې يا خو دې امير صاحب يو انګرېزي رېزېډنټ په کابل کښې منظور کړي او يا دې هغه خپل يو سفير د وائسراے صدر مقام ته راواستوي. او پس د هغې نه دې د حکومت هند د منشا مطابق خاص مشنونو ته افغانستان ته د تلو اجازت ورکړي. د دې نه پس وائسراے عطا محمد خان ته ووئيل چې که چرې امير صاحب د دې شرطونو په بنياد باندې مونږ سره عهدنامه کول غواړي نو زۀ به سر لوئي پيلي پيښور ته وليږم چې هغه سيد نور محمد شاه سره په پيښور کښې يا په بل ځاے کښې د دې عهدنامې خبرې اترې وکړي ولې کۀ چرې امير صاحب دې بنيادي شرطونو منلو ته تيار نۀ وي نو د هغۀ دپاره خپل ايجنټ هندوستان ته را استول بې فائدې دي. ځکه چې زۀ بل قسم عهدنامې کولو ته تيار نۀ يم.

د دې ملاقات نه درې ورځې پس وائسراے عطا محمد خان سره بيا ملاقات وکړو او ورته ئې ووئيل چې تۀ امير صاحب په حقيقي صورت حال باندې په ښۀ شان سره پوهه کړه او د دې عهدنامې د نامنظورولو په خطرو او د هغې د قبلولو په فائدو باندې ئې ښۀ خبردار کړه. او په دې خبره باندې ئې هم راضي کړه چې هغه دهلي ته هغې دربار ته هم راشي چې کوم وائسراے په جنورې 1877 کښې تجويز کړے وۀ. بيا هغۀ عطا محمد خان له د امير صاحب په نوم د دې ټولې معاملې متعلق يوه چيټۍ ورکړه او د عطا محمد خان د رهنمايۍ دپاره ئې هغۀ له تحريري يادداشت ورکړو. د دې نه علاوه وائسراے عطا محمد خان له يوه ګړۍ، يو زنځير او لس زره روپۍ نغدې د هغۀ د ګزشته خدماتو دپاره په طور د انعام ورکړې. د لارډ ليټن د برنۍ ګفتګو نه دا معلومېږي چې هغۀ نۀ صرف دا چې د لارډ سالسبري د هداياتو مطابق انګرېزي ايجنټان په هرات، قندهار او په نورو سرحدي مقاماتو کښې مقررول غوښتل بلکې د هغۀ دا هم منشا وه چې ټول انګرېزان دې خواه هغوي سرکاري ملازمان وي او کۀ غير سرکاري په ازادۍ سره افغانستان ته ځي راځي او امير صاحب دې د هغوي د حفاظت دپاره مناسب انتظام کوي. او بيا دې شرطونو سره ئې دا هم د عطا محمد خان په خلۀ امير صاحب ته سوال جواب وکړو چې کۀ چرې امير صاحب د دې شرطونو په بنا باندې عهدنامه ونۀ کړه نو په دې کښې د هغۀ ځان ته هم خطره ده. اوس کۀ چرې سړے د افغانستان عام حالات او د هغې د عام خلقو احساسات مدنظر وساتي او بيا دا فرض کړي چې امير شير علي خان د دې عهدنامې شرطونه تسليم کړے وے نو دا يقيني خبره ده چې کۀ انګرېزي افسران او غير افسران افغانستان ته راتلې نو د هغوي ځانونو ته به خطره پيښېدله او بيا به حکومت

هـنـد د خپـلـو مـفـادو مـطابق هر وخت د امیر شیر علي خان نه نوې نوې مطالبې کولې. او کۀ چرې ځۀ واقعه دې انګریزانو ته پیښه شوې وے نو بیا به د هغې په بنا باندې حکومت هند هغۀ سره د جـنـګ جـوړولـو بهانې لټولې. حقیقت خو دا دے چې د دې مجوزه عهدنامې صرف د دې یـو شـرط پـه مـنـلـو سره هم د افغانستان وجود ته خطره وه. مګر علاوه له دې نه په کومه طـریقه چې لارډ لیټن د امیر شیر علي خان د ویرولو او په هغۀ د رعب اچولو کوشش کړے وۀ او پـه کـومـه ناجائزه طریقه چې هغۀ امیر شیر علي خان په دې عهدنامه کولو مجبورولو په دې طـریـقـه د یو خوددار او عزتمن پښتون د لارډ لیټن دا خبرې منظورول ناممکن وو. دې کښې شک نشته چې افغانستان په مقابله د انګریزي حکومت یو ډیر ورکوټے او بې طاقته بادشاهي وه ولـې امیـر صـاحـب ته چې دا وخت د پښتنو د ټول قوم یو مسلم فرمان روا وۀ دا وئیل چې ستـا سـلطنت د خاؤرې یوه کټوی ده چې د وسپنې د دوؤ دیګچو تر منځ پرته ده او دا چې کۀ چرې د وسپنې دا دوه دیګچې وغواړي نو تا به د سترګو په رپ کښې د دنیا نه ورک کړي. د یـو ازاد او خـودمـخـتـار قوم بادشاه دپاره څومره د سپکاوي او د رسوایي خبره وه. حالانکې د خـاؤرو هـم دې کـټـوی دا انګریزي د وسپنې دیګچې په 41-1840ء کښـې دا شان لوټ په لوټ رغړولي وو چې د کابل نه ئې په فیروز پور او په دهلي ور ولګول.

لارډ لیـټـن دا سـوال جواب هم د عطا محمد خان په خلۀ امیر صاحب ته وکړو چې د افـغـانسـتـان د ازادۍ په برقرار ساتلو کښې د حکومت هند صرف دا مدعا ده چې مونږ خپل د هـنـدوستان مغربي سرحد محفوظ کړو نو کۀ چرې تۀ زمونږ په مرسته ونۀ دریدې او دا د ذلت شرطونه تا منظور نۀ کړل نو مونږ به د کابل په تخت ستا یو دا شان مخالف سړے کښینوؤ چې څوک زمونږ دې شرطونو منلو ته تیار وي. د لارډ لیټن دا وینا د یو مهذب حکومت د نمائنده دپاره څومره نازیبا ده. بیا د لارډ لیټن دا خبره کول چې کوم زباني اقرارونه او چیټۍ چې امیر شیـر عـلـي خـان له سابق وائسراے ګانو د دوستۍ او امداد ورکړي دي هغه زباني اقرارونه او چیټـۍ هیـڅ د قدر قابل نۀ دي او صرف هغه عهدنامې د پابندۍ قابلې دي چې کومې باقاعده طور سره مهر شـوې او دسـتـخـط شـوي دي، څومره کچه خبره ده حالانکې هم د دې زباني اقـرارونـو او چیـټـۍ پـه بـنـا باندې د افغانستان او د هندوستان تر منځ د دوست محمد خان د زمـانـې نـه تراوسه پورې شلور دیرش کاله امن و امان او دوستي وه. او هر یو فریق خپل ځان د هغې زباني اقرارونو او چیټو پابند ګڼلو.

د عـطـا مـحـمـد خان د رخصتیدو نه شلور ورځې پس لارډ لیټن سر لوئي پیلي ته نور مـحمد شاه سره د خبرو اترو کولو دپاره تحریري هدایات واستول او په هغې کښې هغۀ هاغه ټـول مـطـالـبـات درج کـړل چې د کوم په بنا باندې حکومت هند شیر علي خان سره عهدنامه کـول غـوښتل. پـه دې هـدایـاتـو کښـې هـغۀ ته وائسراے دا هم ولیکل چې ځونکې د دې نه

وړومبے د انبالې په کانفرنس کښې امیر شیر علي خان دا خبره منظور کړې وه چې زۀ به انګریزي ایجنټان او افسران پخپل حکومت کښې پریږدم په دې وجه د ټولو نه وړومبے تۀ نور محمد شاه ته دا ووایه چې اګاهو د دې نه چې د مجوزه عهدنامې په نورو شرطونو بانډې بحث وشي امیر صاحب دې دا شرط ومني او انګریزي ایجنټان دې پخپل ملک کښې پریږدي. نو کۀ چرې دا ابتدائي شرط نور محمد شاه ونۀ منلو نو تۀ نۀ صرف دا چې نور محمد شاه سره مزید خبرې اترې بندې کړې بلکې هغۀ ته دا هم ووایه چې کومه زړه دوستي د حکومت هند او افغانستان په منځکښې موجوده وه هغه هم ختمه شوه.

د لارډ لیټن دا وینا چې امیر شیر علي خان د انبالې په کانفرنس کښې زباني طور منلې وه چې زۀ به انګریزي ایجنټان په خپل ملک کښې پریږدم بالکل غلطه وه امیر صاحب خو د دې کانفرنس نه په راایسته یو انګریزي افسر هم پخپل سلطنت کښې راتیریدو ته نه وۀ پریښې نو دا به څوک څنګه ومني چې هغه په مستقل انګریزي ایجنټانو بانډې رضا وۀ. دا خبره لارډ لیټن د یو څو انګریزي افسرانو د زباني شهادت په بنا کوله حالانکې نۀ خو د دې متعلق څۀ تحریري ثبوت موجود وۀ بلکې لارډ نارتهبروک هم صاف طور سره لارډ سالبسري ته لیکلي وو چې دا خبره غلطه ده.

عطا محمد خان کابل ته د اکتوبر په اخر کښې ورسیدو لو امیر شیر علي خان ته ئې د لارډ لیټن چیټهی او هغه ټولې خبرې چې کومې هغۀ ته لارډ لیټن د انګریزي ایجنټانو د تلو متعلق کړې وې ښکاره کړې. د دې نه پس په درویشتم نومبر امیر صاحب په عام دربار کښې دا ټوله معامله د بحث مباحثې او د فیصلې دپاره پیش کړه. په دې دربار کښې امیر صاحب عطا محمد خان ته هم د خپلو سردارانو او د درباریانو د رائې د اوریدو دپاره اجازت ورکړو. د ډیر وړد بحث او مباحثې نه پس د دربار امراء او وزراء په دې فیصله ورسیدل چې حکومت افغانستان د لارډ لیټن هغه ابتدائي او بنیادي شرط منلو ته تیار نۀ دے چې د کوم په منلو هغۀ افغانستان سره د مزید خبرو اترو کولو دارومدار ایښے دے. د دربار د دې بحث مباحثې او امیر صاحب سره د زباني خبرو اترو ټول رپورټ عطا محمد خان وائسرائے ته ورکړو مګر لارډ لیټن سخت په بې صبرۍ په دې اصرار وکړو چې امیر صاحب دې په دې مجبور کړې شي چې هغه د حکومت هند شرطونه تسلیم کړي. اخر کار عطا محمد خان په یویشتم دسمبر وائسرائے ته ولیکل چې امیر صاحب د لاچارۍ په وجه دې خبرې منلو ته تیار شو چې انګریزي افسران په خپل سرحد بانډې دیره کیدو ته پریږدي. مګر هغه دا ضروري ګڼي چې هغه په دې معامله کښې حکومت برطانیه ته یو څو شرطونه پیش کړي او د دې غرض دپاره هغه دا تجویز کوي چې د هغۀ صدر اعظم نور محمد شاه او میر آخور احمد خان د حکومت هند نمائنده سره د امیر صاحب د طرف نه خبرې اترې وکړي. عطا محمد خان دا هم ولیکل

چې ما خفیه طور سره د قابل اعتبار ذریعو نه دا هم اوریدلي دي چې شیر علي خان د دې انګریزي افسرانو د تقررۍ د تجویز متعلق څهٔ ډیر سخت سخت شرطونه پیش کول غواړي او هغه شرطونه دا دي:

☆ کهٔ چرې په افغانستان کښې چا د انګریزي افسر مال و جان ته اتفاقاً څهٔ نقصان ورسولو نو د هغې فیصله به د افغانستان د رواج او دستور مطابق کیږي. او حکومت برطانیه به په حکومت افغانستان باندې څهٔ زیاتي بوج نهٔ غورځوي.

☆ په سرحد باندې کوم کوم انګریزي افسران چې مقررېږي د هغوي ټول فرائض دې په وضاحت سره بیان کړې شي او هغوي ته دې نهٔ ښکاره او نهٔ په پټه د افغانستان په فوځي او انتظامي امورو کښې د دخل ورکولو اختیار وي.

☆ کهٔ چرې څوک روسي ایجنټ افغانستان ته د حکومت برطانیه د منشا نه خلاف د څهٔ معاملې متعلق د خبرو اترو کولو دپاره راتلل غواړي نو حکومت برطانیه دې هغه د راتلو نه د منع کولو دپاره خپل انتظام کوي. او حکومت افغانستان له دې د هغهٔ د بندش دپاره تکلیف نهٔ ورکوي.

☆ کهٔ چرې حکومت برطانیه افغانستان ته د روپو او د وسلې پوره پوره امداد ور نهٔ کړو نو حکومت افغانستان ته به دا پوره پوره اختیار وي چې هغه د هر قسم امداد د اخستلو نه انکار وکړي اګر چې د دوستي په خاطر به انګریزي افسرانو ته په سرحدي مقاماتو باندې د وسیدو بدستور اجازت وي.

نور محمد شاه او احمد خان سره د عطا محمد خان په یو دیرشم دسمبر 1876ء د کابل نه روان شو او په اوویشتمه جنورۍ 1877ء پېښور ته راورسیدل. په اتویشتمه جنورۍ سر لوئي پیلي، ډاکټر بیلو د هغوي د مزاج پرسي او د خبرو اترو د تاریخ مقررولو دپاره واستولو. نور محمد شاه ناجوړه هم وهٔ خو د کوم کار دپاره چې هغه پېښور ته راغلے وهٔ هغې کار هغه نور هم فکر مند کړے وهٔ. ډاکټر بیلو سره د هغهٔ د 1857ء نه واقفیت پیدا شوے وهٔ. څهٔ وخت چې د لمسډن مشن قندهار ته تلے وهٔ . بیا په انباله کښې په کال 1869ء کښې او په کال 1872ء کښې د سیستان د معاملې متعلق د هغوي په منځکښې د افغانستان متعلق وقتاً فوقتاً ډیرې خبرې اترې شوې وې. د معمولي مزاج پرسۍ او هر کلي نه پس ډاکټر بیلو نور محمد شاه ته ووئیل چې امید دے چې په دې کور کښې به ستاسو ټول ضروریات پوره او حسب منشا وي. نور محمد شاه ورته په جواب کښې ووئیل چې ما ته د خپل ذاتي ارام او خوشحالۍ څهٔ خیال نشته دا وخت زهٔ د هغې معاملې په خیالاتو کښې ډوب یم چې د کوم په سبب زهٔ پېښور ته راغلے یم. ډاکټر بیلو هغهٔ ته ووئیل چې امید دے ټول به خیر شي. ولې نور محمد شاه هغهٔ ته ووئیل چې زهٔ او امیر صاحب دواړه تا خپل دوست ګڼو ولې د حکومت

برطانيه متعلق مونږ دا شان نشو وئيلے. امير صاحب ته د حکومت برطانيه په صداقت او په وفادارئ ډير شک پيدا شوے دے او د دې دپاره هغهٔ سره ډير وجوهات موجود دي. هر چند چې ډاکټر بيلو نور محمد شاه ته ووئيل چې حکومت برطانيه ذ امير شير علي خان حقيقي خير خواه دے مگر نور محمد شاه ورته ووئيل چې د حکومت برطانيه په الفاظو کښې او په عمل کښې ډير فرق دے. کهٔ چرې حکومت برطانيه د افغانستان په کورونو معاملاتو کښې د دخل ورکولو اراده نهٔ لري نو اخر د دې څهٔ وجه ده چې حکومت برطانيه په مونږ باندې د انگريزي افسرانو افغانستان ته د راستولو متعلق دومره زور اچوي. حالانکې د دې نه وړومبے لارډ لارنس، لارډ ميو او لارډ نارتهـ بروک دا خبره تسليم کړې وه چې افغانستان سره د دې تجويز برخلاف ډير مدلل وجوهات موجود دي. بيا مخکښې نور محمد شاه هغهٔ ته دا هم ووئيل چې اگر چې پښتون يو ډير ورکوټے قوم دے او د انگريزانو د مقابلې زور نهٔ لري ولې هغوي ډير خودسره او ازاد خلق دي. او د هغوي په نظر کښې عزت د ژوند نه زيات قابل قدر څيز دے. امير شير علي خان د هغې وخت نه په حکومت برطانيه بې اعتباره شوے دے د کومې ورځې نه چې لارډ نارتهـ بروک د يعقوب خان په معامله کښې دخل ورکړو. او بيا ئ والئ واخان ته بغير د امير د منظورئ نه تحفې تحائف استولې وے. د حکومت انگريزي دې کارونو د امير صاحب د دربار په ټولو سردارانو کښې يو گونه خوف پيدا کړے دے. امير او د هغهٔ رعيت دواړه د انگريزي افسرانو د راتلو سخت مخالف دي. ځکه چې هغوي ته دا معلومه ده چې د هغوي په راتلو باندې به د افغانستان ازادي ورکه شي. واقعاتو ډير خوفناک شکل اختيار کړے دے او اوس د فيصلې دپاره اخري موقع ده. او الله تعالىٰ بنهٔ پوهيږي چې آئندهٔ څهٔ راتلونکي دي.

په ديرشم جنورئ سر لوئي پيلي او نورمحمدشاه او احمد خان وړومبي ځل په مجوزه عهدنامې باندې د خبرو اترو کولو دپاره جرگه وکړه. په دوران گفتگو کښې سر لوئي پيلي د خپل تجويز تمهيد دا شان کښيښودو چې چونکې د انگريزانو او حکومت افغانستان په منځکښې "ناهمواري" ده په دې وجه د دې نوې عهدنامې د کولو ضرورت پيښ شوے دے. بله خبره هغهٔ ته سر لوئي پيلي دا وکړه چې چونکې امير صاحب خپل سفير هندوستان ته د دې عهدنامې متعلق د خبرو اترو دپاره راولیږلو په دې وجه هغهٔ دا شرط تسليم کړو چې انگريزي افسران دې د افغانستان په سرحداتو مقرر شي. نور محمد شاه د دې دواړو خبرو نه انکار وکړو او وې وئيل چې د امير صاحب په زړهٔ کښې هيڅ قسم غلط فهمي يا ناهمواري د انگريزانو برخلاف نشته مگر سر لوئي پيلي هغهٔ ته بيا ووئيل چې د امير شير علي خان زړهٔ د لارډ ميو په زړو عهدنامو باندې خوشحاله نهٔ دے او په دې وجه موجوده وائسراے امير صاحب له دا موقع ورکوي چې حکومت انگريزي د هغهٔ هغه زاړهٔ خواهشات منظور کړي خو

په شرط د دې چې هغه انګریزي افسران پخپلو سرحداتو باندې پرېږدي. نور محمد شاه هغهٔ ته په جواب کښې ووئیل چې کومې عهدنامې د دې نه قبل د لارډ لارنس د زمانې نه د لارډ نارتهـ بروک تر هغې حکومت پورې د انګریزانو او افغانستان په منځکښې شوي دي آیا هغه به منسوخ ګڼلے شي سر لوئي پیلي ورته ووئیل چې ماته د وړومبنو لوظنامو د تنسیخ اختیار نشته زهٔ صرف د 1855ء د لوظنامې ترمیم کول غواړم. د ډیرو خبرو اترو کولو نه پس اخر نور محمد شاه هغهٔ ته ووئیل چې زهٔ خلاصه مطلب تاته ټول ښکاره کول غواړم او تهٔ د هغې هر لفظ ځان سره ولیکه او هر کله چې زهٔ خپل دلائل ختم کړم نو تهٔ په هغې باندې ښهٔ توجه او غور وکړه او بیا ماته خپله فیصله څرګنده کړه. او هر کله چې زهٔ ستا په فیصلې غور وکړم نو زهٔ به درته خپله رائ بیا ظاهره کړم.

د دې نه پس نور محمد شاه په ډیر قابلیت او فصاحت ووئیل چې د انبالې د کانفرنس نه تر دې وخته پورې امیر شیر علي خان هیچرې هم پخپله د حکومت برطانیه نه څهٔ مطالبات نهٔ دي کړي په دې وجه د لارډ لیټن دا وینا چې د دې مجوزه عهدنامې په ذریعه حکومت برطانیه امیر شیر علي خان له د خپل زړهٔ د مطالباتو ذ دوباره پیش کولو موقع ورکوي درست نهٔ ده. په دې ضمن کښې نور محمد شاه هغهٔ ته ووئیل چې هر کله څهٔ تجویز د وړومبو عهدنامو د تبدیلۍ متعلق شوے دے نو د هغې ابتدا د انګریزانو د طرف نه شوې ده. امیر صاحب هیچرې هم د خپل طرف نه د خپلو مطالباتو د پیش کولو ابتدا نهٔ ده کړې چنانچه ما پخپله د شملې په کانفرنس کښې چې هغه هم د لارډ نارتهـ بروک د تجویز مطابق شوے وهٔ مسټر سیټنکر ته دا وئیلي وو چې سابقه اقرارونه او وعدې چې کومې د حکومت افغانستان او د حکومت برطانیه په منځکښې شوي دي هغه کافي شافي دي. او دا مې ورته وئیلي وو چې کهٔ چرې حکومت برطانیه په سابقه اقرارونو کښې تبدیلي راوستل غواړي نو په هغه صورت کښې د افغانستان خلق د انګریزانو په غیر متعین وعدو باندې مطمئن کیدے نشي. پس د دې خبرې کولو نه ما د افغانستان د طرف نه خپل ټول مطالبات پیش کړي وو. د شملې په کانفرنس کښې داسې هیڅ خبره نهٔ ده پاتې شوې چې په هغې فریقینو غور نهٔ وهٔ کړې مګر باوجود د ډیرو خبرو اترو کولو نه زمونږ تعلقات هم بدستور د زړو عهدنامو په بنا دوستانه پاتې شول او په وړومبنو اقرارونو کښې څهٔ تبدیلي ونشوه او امیر شیر علي خان لارډ نارتهـ بروک ته په خپله چیټهٔ کښې صفا ولیکل چې کومې فیصلې او اقرارونه د انبالې په کانفرنس کښې ما سره شوي دي هغه بالکل کافي دي.

بیا نور محمد شاه سر لوئي پیلي ته ووئیل چې لارډ نارتهـ بروک د دې نه اګاهو د امیر صاحب نه دا خواست کړے وهٔ چې کرنل ویلنټائن بیکر به په افغانستان کښې راتیریږي امید دے چې تهٔ به ورله اجازت ورکړې مګر څهٔ وخت چې امیر صاحب د دې اجازت د نهٔ

ورکولو متعلق خپل دلائل پیش کړل نو لارډ نارتهـ بروک هغه دلائل منظور کړل او بدستور د دواړو ملکونو په منځکښې تعلقات خوشګوار پاتې شول. بیا د دې نه پس نور محمد شاه سر لوئي پیلي ته هغه ټول اقرارونه ور په یاد کړل چې کوم لارډ لارنس، لارډ میو او لارډ نارتهـ بروک افغانستان ته د انګریزي افسرانو د نهٔ استولو متعلق امیر شیر علي خان سره کړي وو او په اخر کښې ئ ورته ووئیل چې د خدایے دپاره ورمبي اقرارونه دا شان بې وجې مهٔ غورځوئ بلکې په ټوله معامله باندې په انصاف او غیر جانبدارانه طور سره غور وکړئ. حکومت برطانیه ته دا ښه معلومه ده چې د پښتنو ټول قوم په اتفاق سره افغانستان ته د انګریزي افسرانو په راتلو خفه دے او دا خبره د هغوي په زړهٔ کښې ناسته ده چې کهٔ چرې یو ځل انګریز یا بل یورپین افسر زمونږ په ملک کښې راننوتو نو نن دے کهٔ سبا دا ملک به زمونږ د لاس نه وځي. هرکله چې د افغانستان د خلقو احساسات دا قسم دي نو انګریزي حکومت له دا پکار دي چې د امیر صاحب دپاره به دا څومره مشکله وي چې د دې افسرانو حفاظت هغه د قبائلو په ملک کښې په ښهٔ شان سره وکړي علاوه د دې نه چې د افغانستان ټول خلق د دې افسرانو د راتلو برخلاف دي، نو د امیر صاحب خپل ډیر داسې دشمنان دي چې انګریزانو سره د امیر صاحب د تعلقاتو د خرابولو دپاره به هغوي د دې صاحبانو د قتل کوشش وکړي بله دا چې کهٔ چرې په افغانستان کښې څهٔ انقلاب یا بغاوت راپیدا شو نو دا ضروري ده چې صاحبان به د مفسدینو د لاسه قتل یا نقصانیان شي نو د هغې ذمه واري به د افغانستان په خلقو باندې راشي او د افغانستان او د حکومت برطانیه په منځکښې به همیش دپاره دشمني شي. درې کاله ورومبے یو انګریز افسر میجر میک ډانلډ د افغانستان او د هندوستان د سرحدونو په منځکښې قتل شوے وهٔ نو د هغې په وجه امیر صاحب ته څومره مشکلات او تکلیفونه پیښ شول. امیر صاحب د حکومت برطانیه د خوشحالولو دپاره څومره فوځي کارروائي د خپل رعایا برخلاف وکړې او څومره مالي نقصانات هغهٔ برداشت کړل نو کهٔ چرې دا شان واقعات بیا وشول نو اخر د هغې به څهٔ نتیجه وي.

په دې طریقه نور محمد شاه د دې ټول تجویز برخلاف خپل دلائل ډیر په ښهٔ شان سره پیش کړل او په اخر کښې ئ سر لوئي پیلي ته ووئیل چې اوس زما د لوے او مهذبه انګریزي حکومت نه دا طمع ده چې هغوي به په دې ټولو دلائلو چې کوم ما د دې خبرو په دوران کښې پیش کړي وو غور وکړي او کومې فقرې او الفاظ چې ما د سابقه تحریرونو او کاغذونو نه پیش کړي دي هغه دې ښهٔ په غور ولولي او بیا دې یوه صحیح او د انصاف فیصله وکړي چې څوک په حقه دے او څهٔ کول پکار دي. او زهٔ انګریزي حکومت ته دا خواست کوم چې هغوي دې یو دا شان سوال نهٔ وچتوي چې د هغې په سبب هغه ټولې زړې عهدنامې او اقرارونه او زړې قاعدې ماتې شي. د دې خبرو نه درې ورځې پس سر لوئي پیلي نور محمد

شاه ته د لارډ لیټن هم هغه زاړهٔ مطالبات، زاړهٔ شرطونه او زاړهٔ دلائل پیش کړل چې کوم وړومبے وائسرائے عطا محمد خان ته بیان کړي وو او په هغې زړې خبرې ئې زور ورکړو چې انګریزي افسرانو ته دې امیر صاحب ارو مرو په خپل سرحدي مقاماتو باندې د وسیدو اجازت ورکړي. پس د هغې نه به حکومت برطانیه هغهٔ له د بیروني حملو برخلاف د امداد ورکولو اقرار کوي او د مجوزه عهدنامې په نورو تفصیلاتو باندې به مزید بحث کیږي. ولې کهٔ چرې امیر صاحب دا ابتدائي شرط په ځان نهٔ قبلوي نو حکومت برطانیه به خپل ځان صرف د 1855ء د عهدنامې پابند ګڼي او امیر صاحب له به د هیڅ اندروني او بیروني خطرو متعلق امداد نهٔ ورکوي بلکې د آئنده دپاره به هغوي د هندوستان د سرحداتو د حفاظت دپاره امیر صاحب سره د خبرو اترو کولو نه بغیر خپل انتظام کوي.

نور محمد شاه ته د دې خو پروا نهٔ وه چې دې مجوزه عهدنامه کښې امیر صاحب سره د ذاتي رعایتونو شرطونه لکه د امیر صاحب مقرر شده جانشینان تسلیمول، او د بیروني بغاوتونو د فرو کولو دپاره امیر صاحب له د حکومت هند هر قسم امداد ورکول، هم پریوتل. ځکه چې امیر شیر علي خان ته دا قسم حکومت منظور نهٔ وهٔ چې په هغې کښې دې د انګریزانو اثر او اقتدار ورځ په ورځ زیاتیدې او بیا د هغهٔ نه د هندوستان یو راجه یا نواب جوړ شوے وے. ولې هغهٔ د سر لوئي پیلي نه دا تپوس وکړو چې د دې څهٔ مطلب دے چې آئنده به حکومت هند د خپلو سرحداتو د حفاظت دپاره امیر صاحب سره د خبرو اترو کولو نه بغیر خپل انتظام کوي. آیا د دې مطلب دا خو نهٔ دے چې حکومت هند به دا خپل انتظام د افغانستان د حدودو په دننه هم کوي؟ سر لوئي پیلي په جواب کښې ووئیل چې ما خو د اول نه دا خبره واضحه کړې ده چې د موجوده کانفرنس دا غرض نهٔ دے چې مونږ دې په افغانستان کښې څهٔ دخل ورکړو بلکې ما وئیلي دي چې کهٔ چرې دا کانفرنس ناکامیاب شو نو وائسرائے به د 1855ء د عهدنامې د شرطونو پابندي کوي او په هغې علاقو کښې به د امیر صاحب په اختیاراتو کښې ګوتې نهٔ وهي چې په کومو علاقو کښې حکومت هند د امیر صاحب اختیارات تسلیم کړي دي.

کهٔ چرې د نور محمد شاه په ځائے بل څوک ناتجربه کار افسر امیر صاحب دې کانفرنس ته را استولے وے نو هغهٔ به د لارډ لیټن او د سر لوئي پیلي په دې خبره بالکل نهٔ وهٔ پوهه شوے ولې نور محمد شاه یو ډیر معامله فهم، دور اندیش او د انګریزي افسرانو د مزاج نه ډیر واقف وهٔ. په دریو مختلفو موقعو باندې هغهٔ انګریزي سیاستدانانو سره خبرې اترې کړې وے او په کومه طریقه به چې هغوي د الفاظو په تعبیر خپل مطلبونه پوره کول د هغې نه هغه ښهٔ خبردار وهٔ. هغهٔ سمدستي د سر لوئي پیلي د دې فقرې په مطلب ورسیدو چې انګریزان په قندهار او هرات باندې فوځي قبضه کول غواړي ځکه چې په کال 1855ء کښې

انګریزانو نهٔ د امیر شیر علي خان او نهٔ د هغهٔ د پلار دوست محمد خان حکومت په قندهار یا په هرات کښې تسلیم کړے وهٔ. دا دواړه علاقې په کال 1855ء کښې لا د دوست محمد خان لاس ته نهٔ وے راغلي. څهٔ وخت چې دوست محمد خان سره د انګریزانو عهدنامه شوې وه په دې وجه نور محمد شاه د سر لوئي پیلي د دې فقرې نه چې وائسراے ځان صرف د 1855ء د عهدنامې پابند ګڼي. او د هندوستان د سرحد د حفاظت دپاره به هغه خپل انتظام پخپله کوي. دا مطلب درست او صحیح واخستو چې کهٔ امیر صاحب په خپل سرحدي مقاماتو باندې انګریزي افسرانو ته د ډیره کیدواجازت نهٔ ورکوي نو انګریزان به بیا د قندهار او د هرات د اخستو تیارے کوي ځکه چې د دې دواړو مقاماتو قبضه به د فیرنګیانو په خیال کښې د هندوستان سرحد د انګریزانو حسب منشا مضبوط کړي.

په نولسمه فروری د نور محمد شاه او د سر لوئي پیلي په منځکښې اخري ملاقات وشو نورمحمد شاه د څو ورځو نه ناروغه وهٔ خو د لارډ لیټن دې تجویزونو هغه نور هم ناروغه کړے وهٔ. هغهٔ سره ورځ او شپه د خپل ملک او د بادشاه غم ملګرے شوے وهٔ. په هغهٔ کښې د سخت دماغي کار طاقت بالکل نهٔ وهٔ پاتې شوے ولې د لارډ لیټن دې اخري خبرې هغه ډیر ناقلاره کړے وهٔ. هغهٔ سره دا خوف پیدا شو چې د افغانستان ازادي د انګریزانو د لاسه بیا په خطره کښې ده او کهٔ چرې دا وخت ما د افغانستان د طرف نه واقعات درست طور سره پیش نهٔ کړل نو ډیره اغلبه ده چې پښتون قام ته د یو جابر او زورور حکومت د لاس نه بلاوجه نقصان ورسي. له دې کبله هغهٔ په ډیره ناجوړتیا او تکلیف کښې سر لوئي پیلي ته د خپل ملک د طرف نه وکالت شروع کړو. هغهٔ سر لوئي پیلي ته ووئیل چې د افغانستان او د فیرنګیانو تر منځ یواځې د 1855ء عهدنامه خو نهٔ ده بلکې د 1857ء عهدنامه هم شته او د هغې اووم شرط دا دے چې افغانستان ته به سیوا د یو دیسي وکیل نه بل یو انګریزي افسر هم نهٔ راځي. او دا شرط لا تراوسه پورې نهٔ دے منسوخ شوے. د دې نه پس بیا لارډ میو په خپل قلم دا وعده کړې وه چې حکومت برطانیه به د ټول افغانستان په خودمختارے او ازادے کښې د څهٔ قسم مداخلت نهٔ کوي. په دې زمانه کښې د قندهار او د هرات علاقې هم په افغانستان کښې شاملې وے او بیا لارډ نارتهـ بروک دا تحریري خط امیر شیر علي خان ته لیکلے وهٔ چې د حکومت افغانستان د سرحدي پولې متعلق د انګلستان او د روس تر منځ اخري فیصله وشوه او امیر صاحب دې دا یقین وکړي چې د هغهٔ په هغې مقبوضاتو کښې چې د کوم حدود لارډ ګرینول په خپل خط مورخه اوولسم اکتوبر 1872ء کښې معین کړي دي هیڅ بیروني حکومت به دخل نهٔ ورکوي. آیا اوس د دې ټولو تحریرونو دا مطلب دے چې انګلستان د افغانستان دا حدودات د دې دپاره معین کړي وو چې بیا به هغې باندې پخپله قبضه وکړي. آیا فیرنګیانو مونږ د روس د پنجې نه د دې دپاره خلاصولو چې پخپله مو غرپ کړي.

د دې نه پس نور محمد شاه بیا تول دلائل د انګریزي افسرانو د افغانستان په سرحداتو باندې د نۀ مقرریدو متعلق په ډیره ښه طریقه پیش کړل مګر د سر لوئي پیلي په زړۀ باندې د دې یوې خبرې اثر هم ونۀ شو او نور محمد شاه ته ئې ووئیل چې چونکې امیر صاحب د مجوزه عهدنامې ابتدائي او بنیادي شرط منظوررولو ته تیار نۀ دے له دې کبله زۀ تا سره د نورو خبرو اترو کولو مجاز نۀ یم. البته وائسرائے به ستا دلائل او وجوهات منظور کړي اویا به په نورو شرطونو باندې هغه افغانستان سره عهدنامه کول وغواړي. نور محمد شاه دا خبره منظور کړه او د وائسرائے د جواب په انتظار کښې کښیناستو.

په پنځلسم مارچ د وائسرائے مفصل خط راورسیدو ولې په هغې کښې د نور محمد شاه د خوشحالۍ یوه خبره هم نۀ وه. هم هغه زاړۀ دلائل وو چې کوم بار بار سر لوئي پیلي نور محمد شاه ته پیش کړي وو او هم هغه زاړۀ مطالبات وو. علاوه د نور محمد شاه د دلائلو د تردید نه لارډ لیټن په دې خط کښې یو څو نور الزامات هم په امیر شیر علي خان لګولي وُو. هغۀ لیکلي وو چې د دې کانفرنس په دوران کښې امیر شیر علي خان په ډیرې سرګرمۍ سره فوځي تیارۍ شروع کړي دي. او هغه شپه او ورځ په دې کښې مصروف دے چې خپل فوځونه په مشرقي محاذ باندې راجمع کړي او عام طور سره پښتون قام ته په انګریزانو باندې د جهاد کولو وینا کوي. او اخون صاحب د سوات او خوانین دیر، باجوړ وغیره ته ئې د امداد دپاره سرې لیږلي دي او په عام خلقو کښې ئې د دې کانفرنس د اعتراض متعلق خبرونه خوراۀ کړي دي. د دې نه علاوه هغۀ روس سره هم پټ خط و کتابت شروع کړے دے. څۀ وخت چې سر لوئي پیلي نور محمد شاه ته دا الزامات بیان کړل نو هغۀ یو خط د دې الزاماتو د تردید دپاره سر لوئي پیلي ته ولیکلو چې د هغې خلاصه مطلب مونږ لاندې درج کوؤ.

"پس د سلام نه، د اوویشتم فرورۍ 1877ء خط چې کوم تا د نواب عطا محمد خان په لاس راستولے وۀ ماته په پیښور چاوڼۍ کښې د نهې په ورځ د صفرې د میاشتې په دیارلسم تاریخ راورسیدو او ستا د دوستانه تحریر په مطلب ورسیدم.

دا ریښتیا ده چې تا د نواب عطا محمد خان په خلۀ او په خپله خلۀ هم دا خبره کړې ده چې د ډیرو ځایونو نه ماته دا خبرونه رارسیدلي دي چې امیر د حکومت برطانیه خلاف خلق د جهاد دپاره وچتوي. زما مهربانه، ما هغه ساعت نواب عطا محمد خان ته وئیلي وو چې زۀ تر کومه په کابل کښې وم نو دا قسم هیڅ کار نۀ وۀ شوے او اوس هم زۀ خبر نۀ یم چې دا څۀ معامله ده. بله دا خبره ده چې ما تاته زباني وئیلي وو چې دا قسم خبرېپه مختلف شکلونو کښې د یوې خلې نه بلې خلې ته رسي تر دې پورې چې بالاخر ستاسو خبر نویسان قسماقسم خبرې لیکي. د دې نه علاوه زۀ په دې خبرونو هیڅ اعتبار نۀ کوم د عوام الناسو په خلۀ څوک څۀ اعتبار کولے شي. ځکه چې څۀ وخت کپتان کیویګنري ډپټي کمشنر د کرمې په لار تر

خپل سرحد پورې راغلو نو ډير اعتباري خلقو د هغهٔ بابت کښې څهٔ څهٔ کاغذونه وانهٔ ستول يعنې دا چې يو لوے فوځ کرمې ته راروان دے او د حکومت برطانيه دا دا شان منصوبې په نيت کښې دي. مګر امير صاحب په دې خبرو هيڅ اعتبار ونکړو نو د حکومت برطانيه افسران څرنګ په دې قسم خبرو اعتبار کولے شي. زما مهربانه، زهٔ درته ليکم چې ماته د دې خبرو څهٔ علم نشته.

البته دا خبره ده چې کهٔ يو حکومت لوے وي او کهٔ وړوکے خو چې يو ه دا قسم نهٔ کيدونکې خبره يو لوے حکومت د بل نه غواړي نو هغه بل حکومت به ضرور د خپل شاهي خاندان خلقو سره، د سردارانو، عالمانو او د قبائلو مشرانو سره مصلحت کوي. او چونکې دا شان معاملې د عامو خلقو په ذمه وارئ باندې سر ته رسي له دې کبله دا ضروري ده چې بادشاه د خپلو قبيلو خلقو سره مشوره وکړي. او د هرې قبيلې دا رواج دے چې په جرګه کښې بيل بيل سړے خپله رائ ښکاره کوي او دغه کسان چې څهٔ وخت خپلو خپلو حجرو ته واپس لاړ شي او خلق د هغوي نه تپوسونه کوي (ځکه چې د هر سړي خپله قبيله او خپل قام وي) نو هر يو هغوي ته حال وائي چې ما دا شان رائ ظاهره کړه. او څهٔ وخت چې په دې معاملو باندې په حجرو کښې خبرې اترې وشي نو په هغې کښې ډيره تبديلي پيدا شي او بيا څهٔ وخت چې دا نور کسان خپل خپل کورونو ته لاړ شي نو دوئ بيا څهٔ نور څهٔ خلقو ته ووائي چې هغه بالکل بيل څيز وي. د دې نه علاوه ډير خلق غرضيان وي چې د خپل مطلب دپاره دې خبرو سره څهٔ نور څهٔ هم زيات کړي. او په بل رنګ او په بل شکل کښې ئ خبر نويسانو ته وليږي. په دې قسم بيانونو اعتبار کول د دوستئ نه بعيد وي.

بيا مخکښې تا ليکلي دي چې "اوس د امير صاحب خپله خوښه ده چې هغه د وائسراے دا دوستانه تجاويز منظوروي او کهٔ ئ رد کوي په کوم چې ما تا سره خبرې اترې کړې دي" زما مهربانه، د کومې ورځې نه چې زهٔ دلته رارسيدلے يم نو نهٔ جرګې مونږ کړې دي. په دې کښې ما د دې معاملې متعلق داسې هيڅ څيز نشته چې پټ کړے وي. او خاص طور سره په اخري جرګه کښې چې د پير په ورځ په نولسم فروري مونږ کړې وه په هغې کښې مي هر څهٔ ښکاره کړي وو. په دې خبرو کښې هيڅ قسم تبديلي نشي کيدے. او دا چې تا ليکلي دي چې "زما دا يقين دے چې دا کومې خبرې اترې تهٔ په پيښور کښې ما سره وړے دا دوستانه دي وغيره وغيره." (اصلي فقره چې کومه سر لوئي پيلي نور محمد شاه ته ليکلې وه هغه دا شان وه "مګر په کوم غلط شکل کښې چې تاسو ارادتاً او ښکاره زمونږ تجاويز خلقو ته ښکاره کوئ زهٔ د هغې برخلاف او د دې برخلاف چې امير صاحب په کابل کښې زمونږ برخلاف د جهاد اعلان کړے دے سخت احتجاج کوم. حالانکې د امير صاحب سفير په ظاهره په پيښور کښې مونږ سره دا وخت په دوستانه طريقه خبرې اترې کوي". انګريزي د

دې دا شان ده:

**"But I must protest against misrepresentation wilfully and publicly made against the Amir's preaching a Jehad at Kabul whilst His Highness's Envoy Plenipotentiary is professing to nogotiate on friendly terms at Peshawar."**

زۀ هم ستا الفاظ دوباره کوم د کومې ورځې نه چې زۀ پيښور ته راغلے يم نو ما د دې زړې دوستۍ د مضبوطولو دپاره کوم کوم قسم دلائل پيش کړل او څرنګ د پير په ورځ په نولسم فرورۍ ما په اخرې فقره کښې دا ټوله خبره خلاصه کړې ده. پس زۀ په دې خبره ډير حيران يم چې تۀ ولې زما په خبره اعتبار نۀ کوې او د خبر نويسانو په خلۀ عمل کوے. (سر لوئي پيلي نور محمد شاه ته په خپل خط کښې دا هم ليکلي وو چې امير صاحب د دروغو الزامونه د انګريزانو برخلاف په خلقو کښې مشهور کړي دي)

د الزاماتو د معاملې متعلق چې تا ليکلي دي نو زما مهربانه، د کومې ورځې نه چې زۀ رارسيدلے يم نو تۀ داسې يوه خبره هم نشې ښودلے چې ما کړې ده او هغه په الزام باندې مبني وي. زما دا اميد دے چې آن مهربان به زما ګفتګو باندې توجه کوي نه چې د خبرنويسانو په فضولياتو باندې. او دا چې تا د روسي حکومت متعلق ليکلي دي نو دا يوه لويه معامله ده او ماته د دې بابت کښې څۀ هدايات هم نۀ دي راکړي شوي چې زۀ په هغې خبرې وکړم او چونکې زۀ د دې معاملې په ذکر کيدو خفه يم نو زۀ به په دوستانه طريقه مختصر طور د خپل طرف نه دا ووايم چې د کومې ورځې نه امير صاحب د انبالې د کانفرنس نه واپس راغلے دے نو کوم کاغذ چې د روسي افسر نه راغلے دے د هغې موم او مهرونه هميش ستاسو د ايجنټ په موجودګۍ کښې پرانستي شوي دي. او د دوه دريو ورځو د صلاح نه پس هم هغه کاغذ په اصل انګريزي، فارسي او روسي کښې لارډ ميو ته استولے شوے دے. او هم د هغۀ په صلاح بيا د روسي حکومت افسر ته يو خط ليږلے شوے دے. د هغې ورځې نه تر دې ورځې پورې داسې کوم کاغذ د روسي حکومت نه راغلے دے چې د هغې نقل د حکومت برطانيه په محافظ خانه کښې پروت نۀ دے؟ او د امير صاحب د طرف نه داسې قسم کوم کاغذ هغوي له تلے دے چې د هغې مضمون د هغې خط نه بل قسم وي چې کوم وړومبے ځل د لارډ ميو په مشوره باندې استولے شوے وۀ؟ تاسو اوس هم په هغه تحريرونو باندې اعتراض کوئ چې کوم درحقيقت د حکومت برطانيه د طرف نه تلي دي؟ او د روسي ايجنټانو متعلق زۀ دا وايم چې تاسو دا ثابت کړئ چې روسي ايجنټ کله افغانستان ته راغلے دے؟ دې کښې شک نشته چې د روسي افسر قاصدان چې په نسب کښې سيدان يا صاحبزادګان وي (او دا دواړه ستانه دار خلق دے) د خطونو د راوړلو دپاره راځي. نو کۀ چرې د ژمي په سبب هغه څۀ پنځۀ ورځې پاتې شوے وي نو شوے به وي ولې هيڅا هم چرې ميلمه ته دا نۀ دي وئيلي چې خه زما د کوره ووځه. چونکې د روسي حکومت دا معامله يوه ډيره لويه معامله ده له دې کبله زۀ د دې نه

زياتي نور څۀ د دې متعلق نشم وئيلے.

هر كله چې زۀ واپس امير صاحب له لاړ شم او زۀ هغه د حكومت برطانيه د خيالاتو نه په دې باره كښې ښۀ خبردار كړم نو دا معامله به خاطر خواه او ډير په ښۀ شان سره حل شي. او دا څۀ چې تا د خپل ايجنټ متعلق ليكلي دي نو ستا ايجنټ دا دے موجود دے. امير صاحب سره خو د هغۀ نه زياتي د يو سردار او خان عزت او قدر هم نشته او كومه معامله ده چې د هغۀ نه چا پته كړې ده. او دا چې تا ليكلي دي چې د كابل د ښار كوتوال د كابل خلقو ته ښكاره وئيلي دي چې انګريزي سفارت خانې ته مۀ ځئ نو زما په دې خبره باور نۀ كيږي. او دا چې امير صاحب باندې تاسو بالكل د حملې كولو نيت نۀ لرئ نو د كومې ورځې نه چې زمونږ پخپلو كښې سره دوستي راغلې ده او بالخصوص چې كومې خبرې اترې زمونږ په منځ كښې په پيښور كښې شوي دي او په هغې كښې هم تاسو د دې اظهار كړے دے چې حكومت برطانيه به په هيڅ صورت كښې د امير صاحب په علاقه نۀ بلوسيږي او نۀ به هغۀ سره څۀ دا شان دخل كوي چې په هغې كښې د امير صاحب يا د هغۀ د جانشين خفګان وي يا د افغانستان په ازادۍ كښې څۀ خطره پرېباسي نو د هغې ورځې نه نۀ خو امير چرې د حكومت برطانيه برخلاف د غرضيانو خلقو په خلو اعتبار كړے دے بلكې د هغۀ كوشش هم دا پاتې شوے دے چې حكومت برطانيه سره دوستانه تعلقات وساتم.

او دا چې تا ليكلي دي چې دا الزامات هم دغه شان په ښكاره واپس واخلئ لكه څرنګ په ښكاره طريقه چې تاسو لګولي دي نو زما مهربانه، زۀ هيڅرې د دې خبرې تسليمولو ته تيار نۀ يم چې چا هم دا الزامات په حكومت برطانيه باندې لګولي دي او د دې متعلق د اعلان شائع كول، نو څۀ وخت چې زۀ د امير صاحب په خدمت كښې حاضر شم او هغه زۀ د حكومت برطانيه د دوستانه خيالاتو نه واقف كړم تر كومه پورې چې ماته د هغې خيالاتو علم دے او دا كومې خبرې چې د دې برخلاف كيږي د هغې اصليت هم ورته ښكاره كړم نو بيا دې د دې ټولې معاملې په ښۀ شان سره په هغه ځاے كښې وزن وكړو نو دا اعلان به په مناسبه او ښه طريقه شائع كړو او بيا به هغه اعلان په ښكاره حكومت برطانيه ته هم ورسي.

دا تحرير وليكلے شو د هفتې په ورځ دريم مارچ1858ء

د شير علي خان په دې ورځو كښې د جنګ دپاره تياري كول او د هغې دپاره د پښتنو خانانو او سردارانو نه رائ تپوس كول غالباً چې درست دي مګر سوال دا دے چې آيا د دې قسم تياري كول او د رائ اخستل د هغۀ دپاره جائز وۀ او كۀ نه. مونږ اګاهو هم د دې خبرې په تفصيل سره ذكر كړے دے چې لارډ ليټن د دې كانفرنس په دوران كښې په دريو مقاماتو كښې يعنې كوئټه، كرمه او په چترال كښې د افغانستان په مشرقي محاذ باندې لوځونه راجمع كړل او بيا دې سره ئ سم د امير صاحب نه دا شان مطالبات كول چې د هغې

نـه دا صـفـا مـعلومیده چې کهٔ چرې امیر صاحب د انګریزانو حسب منشا عهدنامه هغوي سره ونـهٔ کړه نو غالباً چې هغوي به ضرور د افغانستان برخلاف فوځي کارروائي وکړي. په دا شان حـالاتـو کښې کهٔ چرې امیر صاحب د خپل بچاؤ دپاره د امداد حاصلولو په غرض پښې لاس وهـلـې وي او خـلـق ئ د دې دپـاره تیار کړي وي چې په هغهٔ باندې د حملې په صورت کښې دې هـغـوي هـغـهٔ سره امداد وکړي نو په دې کښې د هغهٔ څهٔ قصور وهٔ؟ دا خو ناممکن ده چې هـغـهٔ پـه هـنـدوسـتـان بـاندې د حملې کولو خیال په دماغ کښې راوستې وے نو نهٔ هغه دومره نـاپوهه او بیوقوف وهٔ چې هغه په انګریزانو باندې د جارحانه کارروایی دپاره ګواښیدلے وے. ولـې د هـغـهٔ دا یـقـیـن راغلے وهٔ چې انګریزان یو طرف ته خو د کانفرنس په ذریعه په ما باندې خپـل مطالبات منظوروول غواړي او کهٔ چرې ما د هغوي مطالبات منظور نهٔ کړل نو بل طرف ته هـغـوي پـه مـا باندې د حملې کولو تیارے کوي. (په دې حقله کرنل ایچ بي هنا په خپل کتاب جلد اول صفحه نمبر 166 باندې داسې لیکي :

**" With British troops established at different points of his frontier; with the soldiers of the MahaRaja of Kashmir pressing forward to take up a position from which they, too, could menace Afghan territory; with British demands of an obnoxious character and constantly pressed on his acceptance, and supported by threats of evil consequences to himself and his dynasty if he failed to agree to them with alacrity and thankfulness- Sher Ali would have been blind if he had not recognised the danger hanging over him, and criminaly negligent if he had taken no precautions against it.**

**The real truth of the situation in the winter 1876-77 is that both sides were preparing for a possible war; but that the Viceroy was preparing for a war of aggression, and the Amir for a war of defence, and that the aggressive measures had preceded the defensive. Many accusations have been brought against Sher Ali- he was dissatisfied; he was sulky; he was unfriendly; he was ambiguous in speech and act; he was blind to his own advantage- but no one has charged him with the folly of meditating an invasion of India. And not only is there not a little to prove that the Amir ever entertained the thought of taking the offensive- but there is good reason to believe that he was under no delusion as to the probable result to himself of even a defensive war, and that he would have welcomed any change in the attitude of viceroy which would have justified him in modifying his own. " Your Govt;" said Noor Muhammad to Sir L. Pelly at the close of the first metting of the two plenipotentiaries, is a powerful and great one, ours in a small weak one; we have long boen on terms of friendship, and the Amir now clings to the skirt of the British Govt, and till his hands be cut off, he will not release his hold of it."**

**(Afghanistan, No.1 - 1878 - Page 197)**

تـرجـمـه : "هرکله چې امیر شیر علي خان لیدل چې انګریزي فوځونه زما د سرحد په مختلف

مقاماتو کښې ډېره شوې او د مها راجه کشمير سپاهيان شواشو په دې مطلب راروان دي چې داسې مقامات ونيسي چې د هغه ځاے نه هغوي د افغانستان په علاقه ګوابښېدے شي. او انګريزان سخت قابل اعتراض مطالبات ماته او زما د قبلولو دپاره پيش کوي او ماته دهمکي راکوي چې کۀ چرې ما دا مطالبات سمدستي او په شکر ګزارۍ سره ونۀ منل نو دا به زما او زما د خاندان دپاره د خرابو نتائجو نه ډک وي. نو کۀ باوجود د دې علم نه شير علي خان ته د هغې خطرې احساس نۀ وے شوے چې کومه د هغۀ په سر باندې پرته وه نو هغه خو به بيا بالکل ړوند وۀ او کۀ چرې د هغې خطرې نه د بچ کيدو دپاره هغۀ څۀ سامان نۀ وے کړے نو هغه خو به بيا د سخت غفلت مجرم وۀ.

حقيقت خو دا دے چې 77-1876ء په ژمي کښې دواړو فريقو د ممکن جنګ دپاره تيارۍ کولے مګر وائسراے د جارحانه جنګ دپاره تياري کوله او امير د مدافعانه جنګ يعنې د بچاؤ د جنګ دپاره. او د جارحانه کارروايي تياري ورومبى شروع شوې وه. د شير علي خان برخلاف ډېر څۀ الزامونه لګېدلي دې څنې خلق وائي چې هغه خوشحاله نۀ وۀ څنې وائي چې هغه غصه ناک وۀ د دوستۍ قابل نۀ وۀ. څنې وائي چې هغه په خبرو کښې او په عمل کښې مشکوک وۀ. او پخپله فائده به نۀ پوهيدو مګر په هغۀ باندې د بيوقوفۍ دا الزام هيچا نۀ وۀ لګولے. چې د هغۀ په هندوستان باندې د حملې کولو اراده وه. او نۀ صرف دا چې د دې خبرې قطعاً هيڅ ثبوت نشته چې د هغۀ نيت د حملې کولو وۀ. بلکې په دې خبره باندې د باور کولو دپاره ډېر وجوهات موجود دي چې هغۀ ته د دې مدافعانه جنګ د غالبې نتيجې متعلق هم څۀ شکوک نۀ وو. (يعنې د هغۀ دا يقين وۀ چې کۀ زما او د فيرنګيانو په منځکښې جنګ پيښ شو نو زۀ به شکست خورم) او هغۀ به په دې ډېر خوشحاله شوے وۀ چې کۀ چرې د وائسراے په رويه کښې څۀ دا قسم تبديلي راغلے وے چې هغه ئې د خپلې رويې په تبديلۍ مائل کړے وے.

په ورومبې ملاقات کښې نور محمد شاه سر لوئي پيلي ته دا وئيلي وو چې " ستاسو حکومت ډېر طاقتور او لوے دے زمونږ حکومت ورکوټے دے او کمزورے دے. د ډېرې مودې نه زمونږ تعلقات دوستانه راغلي دي او امير اوس ځان د حکومت برطانيه لمن سره نښلولے دے او تر څو پورې چې د هغۀ لاس چا نۀ وي پريکړې تر هغې پورې به هغه دا لمن پرې نۀ ږدي.")

لکه چې څرنګ ورومبے ذکر شوے دے د لارډ ليټن ليکلے جواب نور محمد شاه ته په پنځلسم مارچ ورکړې شو په شپاړسم مارچ نور محمد شاه خپل کاتب (سيکرټري) منشي باقر سر لوئي پيلي ته په دې سلسله کښې د يو څو نورو خبرو اترو کولو دپاره وليږلو ولې سر لوئي پيلي د مزيد خبرو اترو کولو نه انکار وکړو او دا شان سخت جواب ئې ورکړو. د کابل

سفیر تـه د خپـلو دلائلو د بیانولو دپاره کافي وخت ورکړے شوے دے او هغهٔ په تفصیل سره خپـل وجوهات بیان کړي دي . هغهٔ له قریباً څلور هفتې مهلت د قطعي جواب د ورکولو دپاره ورکـړې شـوے دے. اوس نـور وخـت په بحث مباحثې کښې نشي ضائع کیدے نو کهٔ چرې د ایـجـنسـو د مـقـررولو په معامله کښې هغه د قطعي جواب په راکولو کښې څهٔ خبره دوه کول غـواړي نـو زهٔ بـه پـه خـوشـحـالـی د هغهٔ خبرې ته غوږ کیږدم. محمد باقر سر لوئي پیلي ته په جواب کښې ووئیل چې نور محمد شاه في الحال ناروغه دے. او له دې کبله هغه د وائسراے پـه تـحـریـر باندې د غور کولو قابل نهٔ دے. ولې سر لوئي پیلي هغهٔ ته ووئیل چې کهٔ چرې نور مـحـمـد شاه تا ته د مزید بحث مباحثې دپاره هدایات درکولے شي نو هغه دومره هم کولے شي چـې د وائـسـراے د مـطـالباتو جواب یا په ښه او یا په نه کښې درکړي. او دا واضحه کړي چې آیا هـغه د دې بنیادي او ابتدائي شرط منلو ته تیار دے او کهٔ نه. هرچند چې منشي محمد باقر سـر لـوئـي پیـلـي تـه ووئـیـل چـې نـور مـحـمـد شاه ډیر ناروغه دے او هغه به ډیره موده پس د وائسـراے پـه خـط بـانـدې د غـور کولو قابل شي مګر هغهٔ ورته په جواب کښې ووئیل چې دا صـرف بهـانـه ده. او پـه حقیقت کښې نور محمد شاه امیر شیر علي خان سره د مزید مشورې دپـاره مهلت حاصلوي. لاچار محمد باقر د خبرو اترو کولو نه بغیر د سر لوئي پیلي د ځاے نه واپس شو. نور محمد شاه په حقیقت کښې ډیر ناجوړه وهٔ او هغهٔ هیڅ قسم بهانه نهٔ کوله مګر سـر لـوئي پیلي غوښتل چې په هره طریقه چې وي خو چې خپل مقصد حاصل کړم. نور محمد شاه اخر په شپږویشتم مارچ 1877ء وفات شو او سر لوئي پیلي افغان مشن ته د فاتحه خوانی دپـاره سـرے ولیـږلـو او پـه قلا باندې ئ جنډه نیمه راکوزه کړه او شپیتهٔ توپې ئ د هغهٔ په قبر باندې د هغهٔ په اعزاز کښې خلاصې کړې.

کرنل هنا د دې قابل وزیر اعظم په حقله دا شان خیالات ښکاره کړي دي:

"No heavier blow could have befallen Sher Ali at this, the most critical juncture of his life, then the loss of the man on whose statesmanship, diplomatic skill, wide knowledge of affairs and devoted loyalty to himself he had so long been accustomed to rely. An English man who knew Noor Muhammad at Ambala, wrote of him ' that he had there jealously guarded his master's interests, had given life and character to the negotiations, and had sedulously laboured to give a foundation of permanence to what ever had passed between the two rulers, (Lord Mayo and Sher Ali); and it was in jealously guarding his master's interests and in sedulously labouring to defend the foundations of permanence which he had assisted to lay-that he had died. It is possible, that , if he had lived, he might have succeeded in averting the Afghan War, but the possibility is so small that, on the strength of it one can hardly desire that his life should have been prolonged to witness the overthrow of the kingdom he had helped to build up; to share the flight, and be present at the death in exile of the prince he had served so well; to see English men

over running and laying to waste the land they had pledged themselves to respect and defend."

ترجمه : "د شیر علي خان د زندګی په دې سخت وخت کښې د هغهٔ دپاره د هغې سرې د مرګ نه زیاتي لویه صدمه بل څهٔ نشوه کیدے. چې د چا په سیاستدانئ، په جرګه کښې د خبرو کولو په قابلیت، د هغهٔ د مختلفو امورو په واقفیت او د هغهٔ په پوزه او مکملې وفادارئ هغهٔ دومره موده اعتبار کړے وهٔ. یو انګریز چې چا په انباله کښې هغهٔ سره واقفیت پیدا کړے وهٔ د نور محمد په حقله لیکي، چې په دې مقام کښې هغهٔ په ډیر غیرت سره د خپل مالک د مفادو حفاظت کړے وهٔ او په دې بحث مباحثه کښې ئې یو ژوندون او خاص انداز پیدا کړے وهٔ په هغه ځاے کښې هغهٔ په ډیرې جانفشانئ کوشش کړے وهٔ چې هر څهٔ فیصلې چې د دې دواړو فرمان رواؤ یعنې د لارډ میو او شیر علي خان په منځکښې وشي چې د هغې بنیاد مستقل وي. او هم په دې کوشش کښې ئې ساه ورکړه. چې د خپل مالک مفاد په غیرت سره محفوظ وساتي او د دوستئ هغه مستقل بنیادونه چې د کومو په ایښودو کښې هغهٔ ډیر امداد کړے وهٔ د تباه کیدو نه بچ کړي. دا ممکن ده چې کهٔ هغه ژوندے پاتې شوے وے نو د افغانستان دویم لام به هم نهٔ وے پیښ شوے مګر د دې خبرې دومره لږ امید وهٔ چې صرف د دې امید په بهروسه باندې د سړي زړهٔ نهٔ غوښتل چې د هغهٔ عمر دې دومره وړد شوے وے چې هغهٔ پخپلو سترګو د هغې بادشاهئ تباهي لیدلے وے چې د کومې په استحکام کښې هغهٔ دومره لویه حصه اخستې وه. بیا د هغې بادشاه په تیښته کښې هغه پخپله شریک شوے وے او په جلاوطنئ کښې د هغهٔ په مرګ کښې موجود وے. چې د چا هغهٔ ډیر په اخلاص سره خدمت کړے وهٔ او یا ئې دا پخپلو سترګو لیدلے وے چې څرنګ انګریزان هم هغه ملک د پښو لاندې مړي او تباه کوي ئې چې د چا د حفاظت او احترام قسم هغوي پخپله هغهٔ سره کړے وهٔ."

امیر شیر علي خان د نور محمد شاه د مرګ نه وړومبے د هغهٔ د سختې ناروغتیا نه خبر شوے وهٔ چنانچه هغهٔ سمدستي یو بل خپل سفیر پیښور ته را روان کړے وهٔ او د انګریزانو د فوځي خونریزئ نه د بچ کیدو دپاره ئې هغهٔ له د هغې ذلیل او د افغانستان د ازادئ دپاره د هغې مهلک ابتدائي شرط د قبلولو اختیار ورکړے وهٔ چې په کوم باندې لارډ لیټن امیر شیر علي خان سره د نورو خبرو اترو کولو دارومدار ایښے وهٔ مګر باوجود د دې نه چې وائسراے د دې بل سفیر د روانیدو نه خبر شوے وهٔ او د دې هم خبر وهٔ چې دې بل سفیر ته د دې بنیادي شرط د منلو اختیار ورکړې شوے دے ولې هغهٔ امیر شیر علي خان ته د خپل زور او طاقت ښودلو دپاره په دیرشم مارچ سر لوئي پیلي ته حکم راولیږلو چې د مزید کانفرنس او د خبرو اترو سلسله ختمه کړه او فوراً پیښور ته رارخصت شه.

لارډ رابرټ په خپل کتاب (Forty one years in India یو څلویښت کاله په

هندوستان کښې) په صفحه 99-98دا ليکي :

"On learning the death of his most trusted minister, and the failure of negotiations, Sher Ali broke into a violent fit of passion, giving vent to his fury in threatenings and invectives against the British Govt;. He decalred it was not possible to come to terms, and that there was nothing left for him but to fight, but he had seven Crores of rupees, every one of which he would hurl at the heads of the English and he ended by giving orders for a Jehad (religious war) to be proclaimed."

ترجمه : "شير علي خان چې د خپل ډير اعتباري وزير د مرګ نه او د جرګې د ناکاميابۍ نه خبر شو نو ډير سخت په غيظ و غضب شو او خپل قهر ئې د حکومت برطانيه ته په کنځلو او بدوردو وئيلو ښکاره کړو. هغۀ ووئيل چې دا ممکنه نۀ ده چې زمونږ صلح وشي او بغير د جنګ کولو بله هيڅ لار زما پاتې نشوه. ما سره اووۀ کروړه روپۍ دي او دا هره يوه روپۍ به زۀ د فيرنګيانو په سر ور ولم او بيا په اخر کښې هغۀ د جهاد اعلان وکړو."

کرنل هنا د لارډ رابرټس په دې تحرير باندې دا شان رائې ښکاره کوي :

"The incedent may be a true one, though Lord Roberts gives no authority for his account of it. Sher Ali had good cause to feel that it was impossible to come to terms with a Govt; which argued away its own engagements, whilst magnifying his, and after staking the continuance of the friendship between itself and him on a demand destructive of all confidence and goodwill, broke off negotiation with him at the very moment of his yielding to its unwise importunity. That his rage and grief should find vent in threatening and invictives was the most natural thing in the world, but, as has been seen, there exists no proof that he ever proclaimed a Jehad."

ترجمه :" ممکن ده چې دا واقعات رښتيا وي اګر چې لارډ رابرټس د هغې په تائيد کښې څۀ سند پيش کړے نۀ دے. شير علي خان په دې خيال کولو کښې ښۀ حق بجانب وۀ چې يو دا شان حکومت سره د صلاحيت کيدو هيڅ امکان نشته چې هغه د خپلو اقرارونو نه د وتو دپاره خو قسماقسم دلائل پيش کوي او زما اقرارونه ماته په ډير لوے مشکل کښې پيش کوي او هر کله چې دې حکومت هغۀ ته يوه داسې مطالبه پيش کړه چې هغه (په دې دواړو حکومتونو کښې) د باهمي اعتماد او د دوستۍ بالکل منافي مطالبه وه ټول زاړۀ د دوستۍ تعلقات قربان کړل نو د دې نه پس هغۀ سره هغوي عين په داسې وخت کښې د خبرو اترو سلسله ختمه کړه چې هغه د هغې د منلو دپاره تيار شوے وۀ په داسې واقعاتو کښې د امير شير علي خان دپاره د خپل غم او غصې اظهار د کنځلو او بدو ردو وئيلو په شکل کښې يوه قدرتي خبره وه ولې چې څرنګ بره ذکر شوے دے د هغۀ د جهاد د اعلان کولو هيڅ ثبوت نشته."

په دې ځاے کښې به دا وئيل نامناسب نۀ وي چې افغانستان کښې د انګريزي

ایجنټانو د مقررولو د تجویز مخالفت د لارډ لیټن د کونسل دریو ممبرانو هم کړے وۀ. یعنې یو سر هنري نارمن او بل سر آرتهر هاب هاوس او دریم سر ولیم میور. دې دریو وارو تحریري رائ ورکړې وه چې په امیر شیر علي خان باندې د هغۀ د رضا خلاف انګریزي مشن قبلول بالکل نامناسب دي. ځکه چې امیر صاحب د حکومت برطانیه بالکل دشمن نۀ دے او کوم دلائل او وجوهات چې امیر شیر علي خان د انګریزي افسرانو د تقررئ برخلاف پیش کوي هغه بالکل ربښتیا او جائز دي. مګر چونکې لارډ سالسبري او لارډ لیټن پخپله د دې تجویز بانیان وو دې دپاره لارډ بیکنز فیلډ د حکومت نه د هغوي دا رائ په مختلفو طریقو پټه وساتلې شوه او لارډ لیټن صرف د لارډ سالسبري په مشوره امیر صاحب ته خپل مطالبات پیش کړل.

هر کله چې د پېښور کانفرنس د نور محمد شاه د مرګ نه پس د لارډ لیټن په حکم خور شو نو عطا محمد خان ته هم حکم وشو چې بیا کابل ته مۀ ځه او د هغۀ پاتې شوې عملې ته هم حکم لاړو چې کابل نه واپس شئ. او دغه شان د امیر شیر علي خان او د فیرنګیانو په مېنځکښې ټول سیاسي تعلقات پریکړې شول. د دې نه پس لارډ لیټن خفیه طور په قندهار او هرات باندې د پیش قدمۍ دپاره تجاویز جوړ کړل. امیر شیر علي خان هم د دې تجاویزو نه خبر شو چنانچه هغۀ سمدستي د قندهار حکومت افضل خان، خپل سخر ته چې د عبدالله جان یعنې د دۀ د ولیعهد نیکۀ وۀ وسپارلو او هغۀ ته ئ حکم وکړو چې یوه چاونۍ دې فوراً په پشین کښې واچولې شي او یو زر سوارۀ دې د فراه نه په هغه ځاے کښې واچولې شي. د دې نه علاوه هغۀ دولس پلټنې د کابل نه او څلور د هرات نه قندهار ته واستولې مګر چونکې په یورپ کښې د روس او د انګریزانو تعلقات ډېر کشیده شوي وو او قریب وه چې د دې دواړو سلطنتونو په خپلو کښې په یورپ کښې جنګ انښتے وے له دې کبله د انګلستان حکومت لارډ لیټن په دې تجاویزو باندې د عمل کولو نه منع کړو ځکه چې هغوي سره د دې خبرې احتمال وۀ چې کۀ انګریزي فوځونو دا وخت د هرات او قندهار په لوري پیش قدمي وکړه نو روس به د خپل بچاؤ دپاره انګلستان سره په جنګ کولو مجبور شي.

يولسم باب

**د روس د پيشقدمی د ويرې انګريزانو په افغانستان کښې خپل فوځي او سياسي اثر زياتول غوښتل، کابل ته د روسي مشن راتګ، د ترکو او د روس د 1878ء د برلن د عهدنامې په وجه هندوستان باندې د روس د حملې ويره ورکيدل، د انګريزانو خپل شرطونه بيا امير شير علي خان ته وړاندې کول.**

مونږ د لارډ ليټن اود لارډ سالسبري په هغه منصوبو چې کومې هغوي په افغانستان کښې د انګريزي ايجنسو د قائمولو په سلسله کښې جوړې کړې وې مفصل بحث کړے دے مګر دا مو لا نۀ دي ښودلي چې اخر د دې دواړو سياستدانانو ولې د امير شير علي خان د مرضۍ نه خلاف د دې ايجنسو د قائمولو قصد کړے وۀ. او د افغانستان د ازادۍ د شوکولو دپاره تيار شوي وو. د دې اصلي وجه دا وه چې انګريزانو په هندوستان کښې خپل مقبوضات او حکومت بيا د روس د لاس نه په خطره کښې ليدو. او هغوي دا غوښتل چې د دې مقبوضاتو په شمال مغرب باندې يو داسې د وسپنې ديوال جوړ کړو چې دا ملک په هيڅ شان باندې زمونږ د قبضې او د حکومت نه بهر لاړ نۀ شي. په نورو الفاظو کښې د هندوستان محکوميت او غلامۍ د افغانستان ازادي او خودمختاري هم د فيرنګيانو د لاسه په خطره کښې غورخولې وه.

وړومبے د دې خبرې ذکر شوے دے چې د روس د طرف نه په هندوستان باندې د حملې کولو دپاره دا خبره د فوځي نکتۀ نګاه نه ضروري وه چې روس دې په قسطنطنيه باندې قبضه وکړي او په دغه لار دې بيا هغه په بُحيره روم کښې خپل بحري طاقت د انګريزي سمندري بيړې په مقابله ډير زيات کړي. په دې وجه انګريزانو په دې ورځو کښې يعنې د 1875ء نه د روس او د ترکو په معامله کښې د ترکو په مرسته ولاړ وو او دا ئې نۀ غوښتل چې روس هيچرې هم په قسطنطنيه باندې قبضه وکړي د کال 1875ء نه په يورپ کښې د روس او د سلطان روم (يعني د ترکو د بادشاه) تعلقات ډير خراب شوي وو او روس د دې کشيده تعلقاتو نه دا فائده وچتول غوښتل چې په څۀ طريقه باندې د روس او د ترکو جنګ ونښلي او روس ته د قسطنطنيې د فتح کولو موقع په لاس ورشي. چونکې په قسطنطنيه باندې د روس د قبضې کولو اصلي منشا بالاخر په هندوستان باندې حمله کول وو نو لارډ ليټن او لارډ سالسبري دا کوشش کولو چې کۀ چرې روس په قسطنطنيه باندې قبضه هم وکړي نو چې هغوي په وسط ايشيا کښې د افغانستان په مغربي محاذ باندې د خپل مدافعت وړومبے خط د دريائے آمو په خوا خوا کښې د خپلې نګرانۍ لاندې قائم کړي او دغه شان روس د مزيد پيش قدمۍ نه بالکل منع کړي. د دې غرض دپاره دا ضروري ده چې انګريزان

دې په افغانستان کښې خپل سياسي او فوځي اثر تر دې حده پورې زيات کړي چې د هغې ټول سياسيات د مخکښې دپاره د حکومت برطانيه په لاس کښې راشي.

د روس او د ترکو د کشيده تعلقاتو قصه دا شان ده چې په دې ورځو کښې د ترکو حکومت نۀ صرف د ايشيا په يو عظيم الشان رقبه باندې وۀ بلکې د جنوب مشرقي يورپ يوه لويه حصه هم د هغوي د تسلط لاندې وه او د يورپ په لکونو عيسايان د هغوي په رعايا کښې شامل وو. دا عيسائي رعايا په دې ناراض وو چې هغوي ولې د يو ايشيائي قوم چې د مذهب نه مسلمانان دي ، محکوم دي. له دې کبله به هغوي وقتاً فوقتاً بغاوتونه کول او په دې بغاوتونو کښې به د يورپ اکثر عيسائي حکومتونه بالخصوص روس د خپلو هم مذهبو په مرسته ودريدل. اخر په کال 1875ء کښې آسټريا، جرمني او روس په اتفاق سره تحريري طور د سلطان روم نه خپل عيسائي رعايا سره د خاص رعايتونو کولو مطالبات پيش کړل. په دې تحرير کښې فرانس او اټلي هم شامل شو. ولې انګلستان د روس په اصلي غرض باندې پوهه وۀ نو هغۀ په دې کاغذ باندې د دستخط کولو نه انکار وکړو مګر د سلطان صاحب په وينا باندې هغوي هم دستخط وکړو او سلطان صاحب خپل عيسائي رعايا سره د سياسي اصلاحاتو او د نورو رعايتونو د کولو وعدې وکړې مګر د روس منشا دا وه چې ترک د خپل عيسائي رعايا د لاسه په قلاره کښينني. تر دې پورې چې اخر د ترکو او د روس جنګ ونښلي نو څۀ لږه موده پس هغه د يورپ حکومتونو بيا دې خبرې ته مائل کړل چې هغوي په حکومت ترکيه باندې د خپل عيسائي رعايا دپاره نور دباؤ واچوي، مګر چونکې حکومت برطانيه په دې مشوره کښې د شامليدو نه انکار وکړو له دې کبله په دې تجويز څۀ مزيد کارروائي ونشوه. لږه موده پس بلغاريه چې دا هم د ترکو په حکومت کښې شامله وه د سلطان صاحب برخلاف بغاوت وکړو. سلطان صاحب د دې بغاوت د فرو کولو دپاره سختې فوځي کارروايي وکړې. په دې سبب عيسايان په ټول يورپ کښې د خپلو هم مذهبو په مرسته ودريدل او د خپلو خپلو حکومتونو نه ئې د مداخلت کولو مطالبې وکړې. په انګلستان کښې هم مسټر ګليډ سټون د لبرل پارټۍ مشر د ترکو برخلاف زورور تقريرونه وکړل او د خپل حکومت نه ئې د ترکو برخلاف د کارروايۍ کولو اپيل وکړو. په جون 1876ء کښې مانټينيګرو او سرويا هم د ترکو برخلاف پاڅيدل مګر دا ټول بغاوتونه سلطان صاحب د ډيرو سختو جنګونو نه پس فرو کړل او چونکې قدرتي طور بيشانه ډير عيسايان د ترکو د فوځ د لاسه نقصاني شول په دې وجه روس د هغوي په امداد کښې راپاڅيدو او اخر د ترکي حکومت او د هغوي د باغي رعايا تر منځ يوه عارضي صلح د يورپ د لويو لويو سلطنتونو په وساطت سره وشوه. د دې نه پس د سلطان صاحب او د يورپ د حکومتونو د نمائنده ګانو په منځکښې يو لوے کانفرنس وشو مګر چونکې هغوي په ترکي حکومت باندې دا قسم

شرطونه ایښودل چې د هغې منلو ته ترک بالکل تیار نهٔ وو له دې کبله دا کانفرنس ناکامیاب شو او اخر په څلیریشتم اپریل 1877ء روس د ترکو برخلاف د جنګ اعلان وکړو. د روس څهٔ فوځونو خو په علاقه هائے بلقان باندې پیش قدمي وکړه او څهٔ فوځونو په ایشیائے کوچک باندې ورورواندې شول. د پلونه په مقام باندې د روسیانو او د ترکو یو عظیم الشان جنګ وشو او تقریباً پنځهٔ شپږ میاشتې دواړه حکومتونه سخت وجنګیدل ولې په دسمبر کښې پلونه روس واخسته او روسي فوځونه په قسطنطنیه باندې ور وړاندې شول دغه وخت په انګریزانو کښې یو لوئے هیبت پیدا شو. په دې ورځو کښې لارډ بیکنز فیلډ د قدامت پسند ټولې مشر برسر حکومت وهٔ. هغهٔ فوراً قومي جرګه (پارلیمنټ) راغونډه کړه او د روس برخلاف ئې د جنګ کولو دپاره د هغې نه د شپیتو لکو پونډو منظوري واخسته او د بُحیرهٔ روم انګریزي بیړې ته ئې حکم وکړو چې هغه دې فوراً د قسطنطنیه په طرف روانه شي. علاوه د دې نه حکومت برطانیه هندوستاني فوځونه هم مالټې ته راوستل او د سلطان صاحب په صلاح ئې د قبرص په جزیره باندې هم قبضه وکړه.

په یورپ کښې د دې واقعاتو د مختصر بیان نه به لوستونکو ته دا معلومه شوے وي چې په افغانستان کښې د انګریزي افسرانو د مقرریدلو سوال په کال 1875ء کښې لارډ سالسبري هم هغه وخت پیدا کړو چې څهٔ وخت د یورپ حکومتونو د روس په صلاح د ترکو نه د خپل عیسائي رعایا سره د سیاسي رعایتونو کولو مطالبه کړې وه. سالسبري ته هم دغه وخت بیا دا ویره پیدا شوه چې د روسي حکومت د حکومت ترکي عیسائي رعایا سره همدردي کول صرف په قسطنطنیه باندې د پیش قدمۍ کولو یوه بهانه ده. او هم په دې سبب لارډ سالسبري د وسط ایشیا کښې د روس د مقابلې دپاره په افغانستان کښې د انګریزانو پوره اثر او اقتدار قائمول غوښتل. د 1875ء نه پس بیا هر څومره چې روس د بلقان عیسائي رعایا سره خپله همدردي او محبت ظاهرولو هغه هومره فیرنګیان د روس په اصلي غرض باندې نسبتاً زیات پوهیدل او هغوي په افغانستان کښې د خپلو افسرانو د مقرریدلو مطالبه هم په زیاتي زور سره د شیر علي خان نه کوله.

هر کله چې روس د انګریزانو د دې فوځي نقل و حرکت نه خبر شو نو زار سخت برافروخته شو او سمدستي ئې حکم وکړو چې په روسي ترکستان کښې دې فوځونه په هندوستان باندې د پیش قدمۍ دپاره تیار شي. او دې سره ئې یو روسي مشن کابل ته راروان کړو.

د زار روس په ترکستان کښې د فوځونو جمع کولو نه په ټول افغانستان کښې یو هیجان پیدا شو او ډیرې مبالغه آمیز خبرې د دې فوځ د لوئے والي متعلق خورې شوې مګر در حقیقت دا فوځ ټول ټال پنځلس زره او څلور سوه سړي وو او په دریو حصو کښې تقسیم

وو. د دې فوځ اصلي حصه چې هغه په شمار کښې دولس زره جنګي سپاهيان وو په تاشقند کښې را يو ځاے شول او د جون په ابتدا کښې د بخارا علاقې ته را روان شول او د يو ډير تکليف ده سفر نه پس د بخارا په سرحد باندې جم نومے يو مقام ته را ورسيدل. د دې فوځ يوه دسته د چارجوي ګودر طرف ته راروانه شوه او بله دسته د دريائے آمو او د کوه هندوکش په منځکښې علاقې طرف ته د قبائلو د مطيع کولو دپاره راوړاندې شوه. دې فوځي نقل و حرکت سره سم روسي حکومت يو مشن د جنرل ستهوليتهاف د لاندې د تاشقند نه کابل ته راوليږلو ولې د دې مشن د روانيدلو نه وړومبے د روسي فوځ د پيش قدمۍ خبرونه په ټول افغانستان کښې خوارهٔ شوي وو. او دې کښې شک نشته چې شير علي خان سره د افغانستان د سلامتۍ ډيره ويره پيدا شوې وه. د کوم وخت نه چې د روس او د ترکو مخالفت شروع شوے وهٔ نو د هغې تاريخ نه امير شير علي خان او د هغهٔ درباريانو ته دا خيال پيدا شوے وهٔ چې د ترکو او د روس په تنازعه کښې به يوه ورځ د روس او د فيرنګيانو هم جنګ جوړيږي په دې وجه د امير شير علي خان ټولو خپلوانو او سردارانو هغهٔ ته دا مشوره ورکړې وه چې اوس دا وخت په دې دواړو حکومتونو کښې يو نه يو سره پره او اتحاد جوړول ضروري دي مګر شير علي خان د دې مشورې سخت مخالف وهٔ هغهٔ نهٔ خو د روس اثر په افغانستان کښې پيدا کول غوښتل او نهٔ د هغهٔ دا رضا وه چې ځان د فيرنګيانو ماتحت کړم. دې کښې شک نشته چې په 1878ء کښې روس خپل دوه مسلمانان سفيران کابل ته د دې غرض دپاره راستولي وو چې شير علي خان ځان د روس حفاظت ته وسپاري مګر امير صاحب د يو سفير په خبره هم غوږ کښينښودو اګر چې اوس هغه د روسي فوځ په پيش قدمۍ باندې خوفزده شوے ضرور وهٔ مګر څهٔ وخت چې هغه د روسي مشن کابل ته د روانيدو نه خبر شو نو ډير خفه او غصه شوځکه چې هغهٔ ته معلومه وه چې د دې مشن په راتلو به زهٔ يقيناً فيرنګيانو سره په مشکلاتو کښې پريوځم اګر چې هغهٔ په اخر کښې دې مشن ته د خوف په سبب د راتلو اجازت ورکړو ولې په ابتدا کښې هم د امير شير علي خان په چشم پوشۍ د هغهٔ افسرانو په ترکستان کښې د دې مشن په لاره کښې دا شان مشکلات پيدا کړل چې د هغوي کابل ته راتلل د څهٔ مودې دپاره ملتوي شول. د هغهٔ اصلي غرض دا وهٔ چې کهٔ چرې د روس او د فيرنګيانو په منځکښې په يورپ کښې څهٔ روغه وشوه نو ډيره ممکنه ده چې نهٔ خو روس خپل مشن کابل ته راوليږي او نهٔ حکومت برطانيه په افغانستان کښې د خپل اقتدار او اثر قائمولو خواهشمند پاتې شي. چنانچه هر کله چې دا روسي مشن د بخارا په علاقه کښې راروان وهٔ نو شيير علي خان خپل يو افسر د شين اباد مقام ته چې د بخارا په علاقه کښې يو کلے دے جنرل ستهوليتهاف ته د دې غرض دپاره وليږلو چې جنرل موصوف دې د هغه ځاے نه تر هغه پورې نهٔ راروانيږي تر څو پورې چې د هغهٔ د استقبال دپاره کافي انتظام نهٔ وي شوے. امير شير علي

خان پـه حـقيقت كبنې په دې چل روسي مشن له ډيل ور كولو. مگر ستهوليتهاف په دې تجويز رضـا نشـو او خپـل سـفر ئ جاري وساتلو. د دې نه پس بيا د امير صاحب افسرانو دا مشن تر دريـو ورځو پورې د دريائے آمو په كسه غاړه په دې بهانه ايسار كړے وۀ چې كابل ته د هغوي د بـوتـلـو دپاره محافظه فوځي دسته لا تياره نۀ ده. هم په دې طريقه كله په يوه كله په بله بهانه اميـر شيـر عـلـي خـان د دې مشـن كـابل ته په رارسيدو كښې دومره ركاوټونه پيدا كړل چې هـغوي په مشكله په دويشتمه جولايي 1878ء كابل ته راورسيدل. مگر د هغوي د رارسيدلو نـه اگـاهـو د تـركـو او د روس پـه مـنـځكښې روغه وشوه.( دا عهدنامه برلن مورخه ديارلسم جولائي 1878ء پـه ذريـعـه وشـوه ) او په ديارلسمه جولايي دا قطعي طور معلومه شوه چې د روس او د فيرنگيانو په منځكښې د جنگ د كيدلو هيڅ امكان نشته مگر چونكې روسي مشن تـه دا خبـر پـه وخـت مـعـلـوم نشو په دې وجه مشن بدستور خپله پيش قدمي كابل ته جاري وساتله. او د امير د رضا نه خلاف اخر كابل ته راورسيدل.

د امير شير علي خان د هيڅ قول يا فعل نه دا خبره نشي ثابتيدے چې د هغۀ منشا روس سره مستقل تعلقات پيدا كول وو مگر صرف د ميلمستيا د اصولو مطابق هغۀ د شاهي خاندان يو شهزاده، خپل يو څو وزيران او سپه سالار سره د هاتيانو د دې مشن د استقبال دپاره د كابل نـه بهـر واسـتـول. او بيـا ئ هـغـوي په بالا حصار كښې ديره كړل. د هغوي د جائے قيام نه امير صـاحـب چـارچـاپيـره د هـغـوي د حـفـاظـت پـه بـهـانـه دا شان پهرې ولگولې چې هغوي ته د افـغـانسـتـان يو سړي سره هم د امير صاحب په بې علمۍ كښې د خبرو اترو كولو او د ملاقات موقع نۀ وه سيوائ د ډاكټر نه د دې ټول مشن يو افسر ته هم د كابل ښار ته د ننوتو اجازت نۀ وۀ او ډاكـټـر بـه هـم چې كـلـه كـلـه ښـار تـه تلو نو په بنده ډولۍ او د پښتنو د رسالې د يوې مـضـبـوطـې دستې پـه حـفـاظـت كښې بـه تـلـو. د امير صاحب د دې ټولو كارونو نه دا شان مـعـلـوميـږي چې هغه د دې مشن په راتلو ډير تنگ او ناخوښه وۀ ولې چونكې هغه د روس د فـوځي طاقت نه ويريدلو له دې كبله هغۀ په ځان كښې د دې خبرې طاقت نۀ ليدلو چې هغوي پـه زور د افغانستان نه وباسي. په شپږويشتم جولائي دا مشن هغۀ د دستور مطابق عام دربار ته راوبـلـلـو او جنرل ستهوليتهاف هغۀ ته په دې دربار كښې د جنرل فان كافمين د طرف نه چې د روسـي تـركستان گورنر وۀ يو خط پيش كړو. جنرل كافمين په دې خط كښې امير شير علي خـان تـه صـرف دومـره خبـره ليـكـلـې وه چې جنرل ستهوليتهاف د شهنشاه روس او زما يو ډير اعتبـاري افسـر دے نـو زۀ اميد كوم چې په كوم مقصد د هغۀ مشن كابل ته درغلے دے په هغې بـانـدې بـه يـا اميـر صـاحب پخپله او يا د خپل مقرر شوي وزيرانو په ذريعه هغۀ سره په تنهايي كښې خبرې اترې وكړي.

د دې نـه پـس په دويم اگست امير شير علي خان صرف د افغانستان د فوځي طاقت د

ښودلو دپاره د روسي مشن په اعزاز کښې د خپل فوځونو يو لوے نمائش وکړو او بيا ئ هغوي سره په سياسي خبرو باندې بحث مباحثه شروع کړه. دې کښې شک نشته چې د دې خبرو اترو په دوران کښې روسي مشن هم د امير صاحب نه دا قسم مطالبات کړي وو چې کۀ چرې هغه امير صاحب منظور کړے وے نو افغانستان به د روس د سياسي اقتدار لاندې پوره طور راغلے وے. او لکه د بخارا به پښتنو هم خپله ازادي د هميش دپاره د خپله لاسه غورځولې وه. ليکن د پوره تحقيقات نه پس دا خبره د نمر پشان ښکاره ده چې امير صاحب د دې شرطونو د منلو نه انکار وکړو اګر چې د هغې خبرو نوعيت چې کومې د امير شير علي خان او ستهوليتاف په منځکښې په دې موقع وشوې صحيح طور سره د مستند تحريرونو نه معلوميدے شي مګر کوم اطلاعات چې په دې باره کښې د انګريزانو خپلومخبرانو وقتاً فوقتاً خپل حکومت ته ورکړي دي د هغې نه هم دا معلوميږي چې امير صاحب نۀ خو افغانستان د روس په پنجه کښې ورکولو او نۀ ئ هغه د فيرنګيانو محکوم او غلام کولو بلکې د خپل ملک او د خپل قام د ازادی د برقرار ساتلو دپاره هغۀ هر طرف پښې لاس وهل. دا بالکل غلطه خبره ده چې په دې خبرو اترو کښې شير علي خان خپل ملک روس ته په حواله کولو رضا شوے وۀ لکه چې ځرنګ د انګريزي سياستدانانو د يو ټولي د هغۀ برخلاف الزام وۀ.

په دې ورځو کښې چې کوم خفيه مخبران کمناري او حکومت هند په افغانستان کښې د شير علي خان او ستهوليتاف د خبرو د نوعيت د معلومولو دپاره مقرر کړي وو د هغوي د مختلفو تحريرونو نه دا معلوميږي چې ستهوليتاف د افغانستان نه دا دا حقوق د روس دپاره غوښتل:

- ☆ روس ته به دا حق حاصل وي چې هغوي د دريائے آمو او دريائے کابل په منځکښې د ټولې علاقې سروے وکړي.
- ☆ روس به د افغانستان د سرحد په خواوشا کښې د رسد رسانی ځايونه جوړوي.
- ☆ روس به په ټول افغانستان کښې لارې او تارونه جوړوي او د فوځي نقل و حرکت حق به هغوي ته حاصل وي.

هم د دې مخبرانو د يو ټولي د قول مطابق د امير شير علي خان ټول وزراء د دې شرطونو سخت مخالف وو او د بل ټولي د قول مطابق امير شير علي خان ستهوليتاف سره د دې مطالباتو متعلق هيڅ قسم فيصله کول نۀ غوښتل بلکې هغۀ دې بحث له طول ورکولو د دې دپاره چې د انګريزانو په رويه باندې ځان واقف کړي. ولې په دې ټولو مخبرانو کښې يو کس هم دا نۀ وو ليکلي چې شير علي خان په دې شرطونو باندې د رضامندی اظهار کړے وۀ.

دې کښې شک نشته چې امير شير علي خان په دې ورځو کښې په ډيرو وجوهاتو د روس نه ويره په زړۀ کښې لرله او هغه قطعي طور د روس د ناراض کولو دپاره تيار نۀ وۀ

منجمله د دې وجوهاتو نه يوه لويه وجه دا وه چې عبدالرحمٰن خان د روسيانو په لاس کښې وۀ او د هغۀ په هر قسم شرطونو باندې د افغانستان حکومت د روسيانو د لاسه قبولولو ته تيار وۀ. پس لويه ويره هغۀ سره دا وه چې کۀ چرې زۀ روسيان د خپل ځان نه ناراض کړم نو اغلبه ده چې هغوي د خپلو فوځونو په زور عبدالرحمٰن زما په مقابله کښې ودروي. بله وجه دا وه چې روسي فوځونه د افغانستان سرحد طرف ته راروان شوي وو او د هغوي په روسي ترکستان کښې شپه او ورځ د لارې په جوړولو کښې مصروف وو. د دې نه علاوه د قندهار په علاقه کښې د غلجو بعضو قبائلو د هغۀ نه بغاوت کړے وۀ او دا مشهوره وه چې په دې باغي قبائلو کښې ځنې مشران کوئټې ته تللي دي او انګريزانو ته ئې د دخل ورکولو دپاره سوال کړے دے او بيا د دې ټولو دپاره د هغۀ زړۀ ته نزدې زوے عبدالله جان سخت ناجوړه وۀ ولې سره د دې ټولو مشکلاتو دا د شير علي خان د پوره حوصلې او حب الوطني نتيجه وه چې هغه ئې د روس د تجاويزو منظورولو نه منع کړو. په ځاے د دې چې حکومت برطانيه د شير علي خان د دې رويې او د هغۀ د استقلال شکريه ادا کړے وے ځکه چې هغۀ د حکومت برطانيه په سخت وخت کښې د هغۀ دشمن سره يو ځاے نشو. نو انګريزانو هغۀ سره دا قسم ناروا او ناجائز سلوک وکړو چې د قومونو په تاريخ کښې د هغې نظير نشته.

اګرچې په اول اول کښې روسي مشن شير علي خان ته دا شرطونه پيش کړي وو چې د کومو بره ذکر شوے دے مګر کله چې ستولیتاف د دې نه خبر شو چې په برلن کښې د ترکو او د روس معاهده وشوه او په دې سبب انګريزانو سره د هغوي د جنګ کولو خطره لرې شوه نو هغه ورو ورو بيا په دې شرطونو باندې زور ورکول پريښودل او د يو داسې قسم معاهدې تجويز ئې هغۀ ته پيش کړو چې کوم لارډ ميو او لارډ نارتهه بروک شير علي خان ته پيش کړے وۀ. د دې مجوزه عهدنامې شرطونه بيا جنرل لارډ رابرټس ته په کال 1879ء کښې د امير شير علي خان افسرانو دا شان بيان کړي وو. د رو س د طرف نه دا شان اقرار وۀ چې:

☆ مونږ د امير شير علي خان وليعهد تسليموؤ.

☆ کوم پښتانۀ سوداګران چې د روس په علاقه کښې تجارت کوي مونږ به د هغوي حفاظت کوؤ.

☆ هر څومره کسان چې امير شير علي خان روس ته د څۀ هنر د زده کولو دپاره يا د تجارت د زده کولو دپاره راليږي نو مونږ به هغوي سره د قدر او عزت سلوک کوؤ.

☆ کۀ چرې چا بيروني حکومت په افغانستان باندې حمله وکړه نو مونږ به افغانستان له د خپلې منشا مطابق د مشورې او د نور قسم امداد ورکوؤ په شرط د دې چې هغه زمونږ د منظورۍ نه بغير بل يو بيروني حکومت سره هم جنګ نۀ چيړي.

د امير شير علي خان د طرف نه دا دا شرطونه تجويز شوي وو:

☆ امير شير علي خان به د خپل حکومت د ټولو واقعاتو اطلاع د دوستئ په طريقه روسي افسرانو مقيم وسط ايشيا ته ورکوي. او خپل ټول خواهشات به جنرل فان کافمين ته د دې دپاره ظاهروي چې هغه د هغې خواهشاتو باقاعده تعميل وکړي.

په دې مجوزه عهدنامې باندې لا هم هغه شان خبرې اترې کيدے او لا په فريقينو کښې چا هم په هغې دستخط نۀ وۀ کړے چې سرکاري اطلاع ستولي‌ټاف ته د برلن د عهدنامې متعلق راورسيده. او هغې سره هغۀ ته دا حکم راغلو چې سمدستي خپل وطن ته واپس شه. د دې حکم په رارسيدو سره ستولي‌ټاف خپل يو جانشين کرنل روزکنوويو جي سي بي ټي په کابل کښې پريښودو او پخپله په څليريشتم اگست د کابل نه رخصت شو. په شپاړسم ستمبر تاشقند ته ورسيدو کوم مزل چې هغۀ کابل ته په راتلو کښې په دوه مياشتې کښې کړے وۀ هغه مزل هغۀ په درويشتو ورځو کښې وکړو. د دې نه هم معلوميږي چې شير علي خان روسي مشن ته د راتلو په وخت کښې څومره ډيل ورکړے وۀ.

د تاشقند نه ستولي‌ټاف شير علي خان ته يو خط د دې مضمون وليکلو چې، "زۀ نن د شهنشاه روس د کتو دپاره د دې ځاے نه روانيږم د دې دپاره چې زۀ پخپله هغۀ ته د ټولې معاملې خبر ورکړم. کۀ د خداے رضا وي نو ټول ضروري کارونه بهوشي او منظور به شي. زۀ اميد لرم چې کوم خلق د نمرخاتۀ د طرف نه د کابل په دروازه کښې رانوتل غواړي هغوي ته به معلومه شي چې دا دروازه بنده شوې ده. بيا کۀ د خداے رضا وي نو هغوي به په لړزان شي."

د ستولي‌ټاف د دې خط نه د انگريزي سياستدانانو هغه ټولے چې چا په شير علي باندې 79-1878ء جنگ جوړول جائز گڼل دا نتيجه وباسي چې جنرل ستولي‌ټاف په دې خط کښې امير شير علي خان سره په شهنشاه روس باندې د دې دويمې مجوزه عهدنامې منظورولو وعده کړې وه او دا د دې عهدنامې په ذريعه شير علي خان په کال 1878ء کښې د انگريزانو برخلاف روس سره اتحاد جوړول غوښتل. مگر د انگريزانو دې ټولي سره د دې نتيجې د وښکلو دپاره هيڅ معقول او مدلل وجوهات نشته. د ټولو نه وړومبے خو دې خبرې ته کتل پکار دي چې په دې مجوزه عهدنامه کښې شير علي خان ته کومه خاص فائده روسيانو ورکوله. په دې کښې روس هغۀ سره نۀ د مدافعانه او جارحانه عهدنامې تجويز کړے وۀ او نۀ ئې د فوځي او مالي امداد څۀ غوټ پريکړې اقرار هغۀ سره کړے وۀ. هم د دې قسم شرطونه چې کوم ستولي‌ټاف شير علي خان ته په دويمه عهدنامه کښې تجويز کړي وو هغه وړومبے د لارډ ميو او د لارډ نارتهبروک د لاس نه نامنظور کړي وو. او د لارډ ليټن د قول مطابق د شير علي خان او د حکومت برطانيه په منځکښې د سردمهرئ باعث شوي وو نو بيا په دې

خبـرو بانديې د باور کولو دپاره څۀ وجه کيدے شي چې امير شيير علي خان د روسيانو د لاسه هـم هـغـه شـرطـونه منظور کړل چې د کوم متعلق هغۀ د فيرنګيانو نه بې اطميناني ښکاره کړې وه. ولـې د دې تـولـو خبـرو نه د پاسه دا خبره ده چې په حيثيت د يو ازاد او خودمختار بادشاه اميـر شير علي خان ته د خپل قوم او د خپل ملک د حفاظت دپاره هر بيروني حکومت سره د عهـدوپيـمـان کـولـو اختيـار او حـق حـاصـل وۀ. شيـر عـلي خان نۀ خو د حکومت برطانيه يو بـاجـګزار يا ماتحت فرمانروا وۀ او نۀ هغۀ له هغوي څۀ باقاعده ماجب د دې خبرې دپاره مقرر کـړے وۀ. چـې تـۀ بـه بـل بيـرونـي طاقت سره هيڅ قسم تعلقات نۀ ساتې. او بيا خاص طور په داسـې وخـت کښـې خـو د هـغـۀ خپل ځان بل چا سره ګنډل بالکل جائز بلکې بالکل ضروري وو. چـې څۀ وخـت هـغـۀ تـه دا مـعـلـومه شوه چې انګريزان زما نه د ازادۍ او خودمختارۍ په اخستـو کښـې شـب و روز مـصـروف دي او کـۀ چـرې زۀ په خپله رضا دا ازادي هغوي ته نۀ حـوالـه کوم او نۀ خپل ځان مطيع او فرمانبردار کوم نو هغوي نن دے کۀ سبا زما په علاقه پيش قـدمي کوي. د پيښور په کانفرنس کښې فيرنګيانو هغۀ ته صفا دا خبره ښکاره کړه چې هغوي د لارډ لارنـس ، لارډ ميـو او لارډ نـارتهـ بـروک د وعـدو هيڅ پروا نۀ کوي او کۀ چرې شير عـلي خان انګريزي ايجنټان د خپل ملک په سرحدي مقاماتو کښې ديره کيدو ته نۀ پريږدي نـو حـکـومـت برطانيه به خپل ځان صرف د 1855ء د عهـد نـامـې پـابند ګڼي. يعنې په نورو الـفـاظـو کښـې کـۀ چـرې امير صاحب زمونږ مجوزه شرطونه په ځان نۀ قبلوي نو بيا به مونږ د هـنـدوستـان د حـفـاظـت دپاره په قندهار او په هرات بانديې قبضه کوو. ځکه چې په 1855ء کښـې نـۀ قندهار او نۀ هرات د دوست محمد خان د لانديې وو . په داسې واقعاتو کښې د شير عـلي خـان د خـلاصـي بله لار نۀ معلوميده سيوا د دې نه چې هغۀ ځان يو داسې حکومت سره وګـنـډي چـې د دې مـصـيبـت پـه وخـت کښې هغه د فيرنګيانو د پنجې نه خلاص کړي. مګر حـقيقت دا دے چې امير شيير علي خان ته د هر نه څۀ نه زياتي خوږ څيز خپله ازادي وه له دې کبـلـه هـغـۀ خپـل ځـان د روس لـمن ته ونۀ غورځولو او نۀ ئې د انګريزانو برخلاف هغوي سره عهدوپيمان وکړو. د ستهوليتاف په خط کښې چې کوم څيز ته اشاره وه د هغې اصليت دا دے چې په دې ورځو کښې انګريزانو هم يو مشن کابل ته راستول غوښتل او په دې باره کښې ئې شيـر عـلـي خان ته خبر ورکړے وۀ. ولې په کومه طريقه چې فيرنګيانو دا مشن په زور کابل ته راستـولـو نـو د هغې نه دا معلوميده چې انګريزان کابل ته د روسي مشن په راتلو ناراض دي او هغوي صرف د شير علي خان په سپکاوي او په افغانستان کښې د انګريزي رعب او اثر اچولو دپاره د روسي مشن په بدل کښې دا مشن په داسې رنګ راستوي لکه چې څوک په وچ زور د بـل سـرې کـور تـه د هغۀ د اجازت او د مرضۍ نه بغير ورننوځي. د دې قسم مشن په قبلولو کښې د يو خوددار او ازاد بادشاه او د هغۀ د قوم دپاره بيشک و شبه بيحده ډير زيات ذلت او

رسوائي وه ليکن يو زورور طاقت د کمزوري او بې اتفاقه اولس د احساساتو هيڅکله پروا نۀ ده کړې. په دې وجه لارډ ليټن دا فيصله وکړه چې خواه کۀ شير علي خان رضا وي يا نه او خواه هغه اجازت ورکوي او که نا خو دا مشن به کابل ته ضرور ځي. چونکې د لارډ ليټن د دې ناجائزې روېې اصلي وجه د روسي مشن کابل ته راتګ وۀ د دې کبله شير علي خان ستهوليتهاف ته دا سوال کړے وۀ چې تۀ زار روس ته زما د طرف نه دا ووايه چې کۀ چرې فيرنګيان ما سره د څۀ بدو کولو اراده لري نو يا خو تۀ ما د هغوي د پنجې نه خلاص کړه او يا چونکې اوس اوس د فيرنګيانو او د روس صلح شوې ده نو زار دې زما هغوي ته سفارش وکړي چې هغوي ماسره د بدو کولو نه منع شي. دا اغلب معلوميږي چې ستهوليتهاف په خپل دې خط کښې هم د دې معاملې ته اشاره کړې وه او شير علي خان ته ئې ليکلي وو چې زۀ به ضرور زار پخپله د دې ټولو معاملاتو نه خبر کړم او اميد دے چې فيرنګيان به پخپل مشن کابل ته نۀ راستوي ولې د فارسي متل دے چې خوے بد را بهانه بيسيار. د لارډ ليټن اصل منشا خو دا وه چې په هره طريقه چې وي زۀ افغانستان د فيرنګيانو د اقتدار او اثر لاند ې راولم. او د هغې په مشرقي سرحد باندې په بعضې داسې مقاماتو قبضه وکړم چې بيا د آئنده دپاره فيرنګيان د افغانستان په هره حصه بې تکليفه قبضه او پيش قدمي کولے شي او په دې طريقه د فيرنګيانو رعب د افغانستان په بادشاه او په پښتون قام باندې دا شان قائم کړي چې په هغوي کښې د مخکښې دپاره زمونږ د منشا نه خلاف د څۀ کار کولو جرأت پاتې نشي. اوس د دې غرض د حاصلولو دپاره هغۀ شير علي خان سره د جنګ د نښلولو څۀ بهانه پيدا کول غوښتل ولې تر کومه پورې چې د روس او د فيرنګيانو تعلقات په يورپ کښې خراب وو او فيرنګيانو سره دا ويره وه چې په افغانستان کښې د هغوي يو غلط قدم اخستل به هغوي روس سره په جنګ کښې ونښلوي نو تر هغې پورې فيرنګيانو ته دا جرأت ونشو چې هغوي د افغانستان برخلاف وګوابښيږي. ځکه چې د وسط ايشيا نه روس د افغانستان په ملګرتيا کښې په هندوستان باندې ډير په اسانه پيش قدمي کولے شوه. او انګلستان دا نۀ غوښتل چې په داسې نازک وخت کښې افغانستان زمونږ نه ناراض شي. ولې څۀ وخت چې د روس او د ترکو په منځکښې د برلن صلح وشوه او فيرنګيان د روس د جنګ نه بيغمه شول او افغانستان بيا يواځې پاتې شو نو حکومت برطانيه ته د خپل غرض د حاصلولو دپاره موقع په لاس راغله. او بيا ئې امير شير علي خان ته اوبۀ خړول شروع کړل. د دې ټولو ناروا بهانو نتيجه د افغانستان دويم لام شو. چې په هغې کښې فيرنګيانو امير شير علي خان په سختې بې انصافي‌سره د خپل پلار نيکۀ د ملک نه وشړلو او په ټول افغانستان باندې ئې د خپلې منشا مطابق د يو خاص وخت دپاره خپل اثر قائم کړو. دا بهانه په کومه طريقه لارډ ليټن له په لاس راغله د هغې تفصيل مونږه په مخکښې باب کښې ليکل مناسب ګنو.

# دولسم باب

**د چيمبر لين ، کمناري اوسينټ جان مشن د کابل دپاره. د وليعهد عبدالله جان په مرګ د مشن پيښور کښې ايسارتيا، مشن ته د لارډ ليټن هدايات، د غلام حسين خان کابل ته رسيدل، او د امير صاحب او د هغهٔ د وزيرانو سره خبرې، د کمناري د افريدو سره ځان له خبرې او د علي مسجد ګورنر فيض محمد خان په هغې بد ګنل، د کمناري خيبر ته تګ او د فيض محمد خان د دغه مشن راشړل، په افغانستان د لام تيارے.**

هر کله چې حکومت هند د دې نه خبر شو چې يو روسي مشن کابل ته راروان دے نو لارډ ليټن په اووم جون 1878ء د تار په ذريعه نوي وزير هند لارډ کرينبروک ته دا اطلاع وکړه چې کافمين امير شير علي خان ته د يو روسي سفير کابل ته د راتلو خبر ورکړے دے. د دې نه پس کوم خبرونه چې د دې سفير د راتلو متعلق حکومت هند ته وقتاً فوقتاً رارسيدل د هغې باقاعده اطلاعات به هغوي د تار په ذريعه وزير هند ته ورکول. ځهٔ موده پس لارډ ليټن د حکومت برطانيه نه د دې خبرې اجازت وغوښتو چې حکومت هند دې هم يو سفير کابل ته واستوي او د دې سفير د استولو د طريقې وغيره متعلق دې حکومت انګلستان ټول اختيارات حکومت هند ته ورکړي. لارډ کرينبروک د لارډ ليټن د دې تجويز په اول اګست 1878ء هغهٔ ته دا جواب ورکړو چې کابل ته د سفير ليږلو نه وړومبے دا معلومول پکار دي چې روسي مشن کابل ته راورسيدو کهٔ نه. دوه ورځې پس لارډ ليټن هغهٔ له خبر ورکړو چې روسي مشن کابل ته رارسيدلے دے. پس وزير هند هغهٔ له د انګريزي سفير کابل ته د استولو اجازت خو ورکړو ولې دا ئ ورته وليکل چې کهٔ چرې امير شير علي خان دې سفير ته د راتلو اجازت ور نهٔ کړي نو لارډ ليټن به په کومه طريقه هغه په دې اجازت ورکولو مجبوروي. لارډ ليټن د دې خبرې هيڅ ځهٔ خاص جواب ور نهٔ کړو خو صرف دومره ئ ورته وليکل چې حکومت هند به په دې باره کښې بغير د حکومت برطانيه د مشورې نه هيڅ ځهٔ کارروائي نهٔ کوي. اوس لارډ ليټن سمدستي د انګريزي مشن د افسرانو په انتخاب کښې مشغول شو. د دې مشن مشر آخر هغه سر نيول چيمبر جي سي بي جي سي ايس آئي چې د مدراس د فوځونو کمانډر انچيف وهٔ خوښ کړو. او ميجر پي ايل اين کيويګنري سي ايس آئي (المعروف کمناري) او ميجر اے بي او سينټ جان رائل انجنير ئ هغهٔ سرَه د پوليټيکل فرائضو د ادا کولو دپاره مقرر کړل. علاوه د دې کسانو يو فوځي سکتر، دوه ايډيکانګ او دوه نيم سوه سوارهٔ د کپتان اے ايچ پرنسپ د لاندې د مشن سره د تلو دپاره مقرر شول. دې ټولو افسرانو ته حکم وشو چې ماه ستمبر کښې دې کابل ته د روانيدو دپاره تيار اوسي دې سره سم لارډ ليټن نوآب غلام حسين خان سي ايس آئي د دې دپاره مقرر کړو چې هغه د مشن د روانيدو نه وړومبے امير

صاحب د دې سفارت نه خبر کړي. دا نواب غلام حسين د نواب عطا محمد خان متقدم جانشين وۀ ليکن لارډ لارنس دې په 1864ء کښې د امير شير علي خان په شکايت په دې وجه واپس رابللے وۀ چې هغه اعظم خان سره د شير علي خان برخلاف سازشونه او منصوبې کولې.

د لارډ ليټن يو دا شان سړے د يو دا رنګ نازکې معاملې متعلق منتخب کول دا خبره صفا ظاهروي چې د ابتدا نه د لارډ ليټن نيت شير علي خان سره اوبۀ خړول وو بهر کيف نواب غلام حسين خان له لارډ ليټن يو خط د امير صاحب په نوم د انګريزي مشن د راتلو او په افغانستان کښې د هغوي د حفاظت د انتظام کولو متعلق دستي ورکړو. او پيښور ته ئې راوليږلو مګر قبل د دې نه چې هغه کابل ته روان شوے وے د شير علي خان د وليعهد عبدالله جان د مرګ خبر راورسيدو. لارډ ليټن سمدستي يوه بله چيټئ د عذر خواهئ د شملې نه د امير صاحب په نوم واستوله. او هغۀ ته ئې وليکل چې انګريزي مشن به څلويښت ورځو پورې خپل روانيدل د دې دپاره ملتوي کړي چې هز هائنس ته د ماتم په ورځو کښې په هيڅ معامله باندې د غور کولو تکليف ونشي.

دې کښې شک نشته چې عام طور د ماتم ميعاد څلويښت ورځې وي ولې عبدالله جان شير علي خان ته په ټول اولاد کښې ډير ګران وۀ د هغۀ د وليعهد کولو دپاره هغۀ خپل دوه مشران زامن د ځان نه ناراض کړي وو او يعقوب خان د هغۀ د ټولو نه مشرے زوے هم په دې سبب لا په جيلخانه کښې بنديوان پروت وۀ او ايوب خان په هرات کښې جلاوطن وۀ کۀ چرې لارډ ليټن ته واقعي د شير علي خان د احساساتو لحاظ کول منظور وے نو پکار وو چې هغۀ د مشن د تګ دپاره دا شان د حکم په لهجه کښې د څلويښتو ورځو ميعاد نۀ وے مقرر کړے بلکې تر هغې پورې ئې د مشن ليږل ملتوي کړے وے تر کومه پورې چې شير علي خان پخپله د هغې د روانيدو دپاره رضامندي نۀ وے ظاهره کړې.

د عبدالله جان د مرګ په سبب لارډ ليټن چيمبر لين ته خو دا حکم وکړو چې مشن دې في الحال په پيښور کښې ايسار شي ولې نواب غلام حسين خان ته ئې حکم وکړو چې تۀ فوراً کابل ته روان شه او امير صاحب له باقاعده خبر ورکړه چې انګريزي مشن عنقريب کابل ته را روانيدونکے دے . د دې نه علاوه هغۀ کمناري ته دا اختيار هم ورکړو چې تۀ سمدستي افريدو او د درۀ خيبر نورو قبائلو سره ځان له د دې مشن د تګ متعلق خبرې وکړه.

لوستونکو ته دا خبره ياد ساتل پکار دي چې په دې ورځو کښې د فيرنګيانو حکومت د پيښور نه وړاندې نۀ وۀ . درۀ خيبر او د هغې نه چارچاپيره قبائل د قديم نه د حکومت افغانستان ماتحت ګڼلے شول. او د کابل د امير نه به ئې مواجبات اخستل. د لارډ ليټن دې قبائلو سره بلاواسطه د امير صاحب د منظورئ او اجازت نه بغير ګفت و شنيد کول د هر قسم

قوانینو نه برخلاف خبره وه. کۀ چرې اوس په دې زمانه کښې چې دا قبائلي علاقه کښې د فیرنګیانو د تصرف د لاندې ګڼلي شي د افغانستان حکومت دې قبائلو سره د فیرنګیانو د وساطت نه بغیر ځان له سیاسي خبرې وکړې نو یقیناً چې فیرنګیان به په دې سخت ناراض شي او د سیاسي تعلقاتو د کشیدګۍ باعث به شي. له دې کبله ځۀ وخت چې امیر شیر علي خان د لارډ لیټن او د کمناري د دې کار نه خبر شوے وي لکه چې یقیناً به خبر شوے وي نو هغه به سمدستي په دې پوهه شوے وي چې د وائسرا دا تهوله کارروائي دوستانه نۀ ده. بلکې د دې دپاره ده چې هغه ما له اشتعال راکړي او د جنګ دپاره ما ته بهانه جوړوي.

د وائسرا د حکم مطابق چیمبرلین په پیښور کښې پاتې شو او نواب غلام حسین خان کابل ته روان شو. په دې منځکښې لارډ لیټن د انګریزي مشن د رهنمایۍ دپاره وړدۀ او مفصل هدایات چیمبر لین ته راواستول. په دې هدایاتو کښې هغۀ دا لیکلي وو چې چیمبر لین او د هغۀ ملګري دې په شپاړسم ستمبر کابل ته روان شي خواه شیر علي خان زما د خط ځۀ جواب راکړې وي کۀ نه او دا چې کۀ د امیر صاحب مقامي افسران د مشن په لاره کښې ځۀ مشکلات پیدا هم کړي ولې مشن به د وړاندې تلو نه نۀ پاتې کیږي. تر څو پورې چې څوک ذمه وار افسران د وسلې په زور مشن مخکښې پرې نۀ ږدي بیا ئې ورته مخکښې لیکلي وو چې ځۀ وخت مشن کابل ته ورسي نو پکار دي چې امیر صاحب په عام دربار کښې مشن ته هرکلے ووائي بیا په دې موقع به چیمبر لین هغۀ ته دا ووائي چې دا مشن صرف دوستانه مشن دے او د دې غرض دپاره راغلے دے چې کومې غلط فهمۍ د امیر صاحب او د فیرنګیانو په منځکښې د انبالې د کانفرنس د وخت نه پیدا شوي دي هغه لرې کړي. بیا دې چیمبر لین ځان له په ملاقات کښې امیر صاحب ته دا خبره واضحه کړي چې د دې مشن د راتلو موجوده وجه دا ده چې چونکې په کابل کښې روسي مشن ته په هرکلي وئیلو کښې شیر علي خان د حکومت برطانیه ښکاره په ښکاره سپکاوے کړے دے نو یو خو په دې سبب او بل ځۀ نور هم دا شان واقعات اوس اوس په وسط ایشیا کښې پیښ شوي دي چې د هغې په سبب هم د حکومت افغانستان او حکومت برطانیه تعلقات تر دې حده پورې نازک شوي دي چې حکومت برطانیه دا ضروري ګڼي چې فیرنګیانو سره د آئنده تعلقاتو متعلق دې هغوي د امیر صاحب نه قطعي طور د هغۀ رائ معلومه کړي د دې نه پس کۀ چرې شیر علي خان د دې خبرې ځۀ تسلي بخش جواب ورکولو ته تیار نۀ وۀ او یا چیمبر لین ته د نورو ذریعو نه معلومه شوې وي چې امیر صاحب د دې نه وروسته د حکومت برطانیه د مفادو نه برخلاف ځۀ پالیسي اختیار کړې وي نو بیا دې چیمبرلین په ښو کلکو الفاظو کښې امیر صاحب او د هغۀ وزیران د دې قسم پالیسۍ د خرابو نتیجو نه خبردار کړي او کۀ چرې بیا هم د چیمبر لین دا یقین راشي چې امیر صاحب د نوي سر نه فیرنګیانو سره د ښو تعلقاتو په حق کښې نۀ دے نو

بیا دې هغه ټول مشن ختم کړي او واپس دې هندوستان ته راشي.

لارډ لیټن چیمبر لین ته په دې باره کښې د امیر صاحب د اصلي ارادې او نیت معلومولو دپاره دا معیار ایښے وۀ چې کۀ چرې امیر صاحب روسي مشن د افغانستان نه د وتلو وینا کولو ته تیارَ وي نو د هغۀ نیت به انګریزانو سره د صلاحیت کولو وي. او کۀ د دې وینا کولو ته هغه تیار نۀ وي نو بیا به د هغۀ نیت مونږ سره هم د روغې کولو نۀ وي. ولې کۀ چرې امیر صاحب بیا دوباره حکومت برطانیه سره په صلاحیت کولو رضا وي نو چیمبر لین دې هغۀ ته دا تسلي ورکړي چې فیرنګیان صرف په هغې صورت کښې د امیر صاحب دوستان کیدے شي کۀ چرې هغه سمدستي روسي مشن د خپل ملک نه رخصت کړي او د مخکښې دپاره دا اقرار وکړي چې د افغانستان بیروني پالیسي به صرف د انګریزانو د تصرف لاندې وي او روس ته به په هغې کښې د ګوتو وهلو هیڅ اختیار نۀ وي. د دې نه وړاندې لارډ لیټن چیمبرلین ته دا لیکلي وو چې تۀ امیر صاحب ته دا هم ووایه چې د آئنده غلط فهمو نه د بچ کیدو دپاره او د دې دپاره چې دنیا ته د افغانستان او حکومت برطانیه د دوستۍ اظهار وشي دا ضروري ده چې امیر صاحب دې خپل ملک کښې انګریزي افسرانو ته د وسیدو اجازت ورکړي. البته خاص په کابل کښې د انګریزي نمائنده په وسیدو زور مۀ ورکوه ځکه چې د وړومبنو بحث مباحثو نه دا خبره ښکاره شوې ده چې امیر صاحب پخپل صدر مقام کښې د انګریزي ریزیډنټ د وسیدلو سخت مخالف دے ولې په دې سلسله کښې هغۀ ته دا خبره واضحه کول پکار دي چې کۀ چرې حکومت برطانیه خپل مستقل ایجنټان صرف په هرات او بلخ کښې مقرر کړل نو په هغه صورت کښې به بیا امیر صاحب زمونږ حسب منشا خاص خاص سفیرانو ته کابل ته د تلو پوره پوره اجازت ورکوي.

په دې هدایاتو کښې چیمبر لین ته د برني رعایتونو د حاصلولو په عوض کښې امیر صاحب سره د لاندیني اقرارونو کولو اختیار لارډ لیټن ورکړے وۀ:

☆ حکومت برطانیه به یو سالانه رقم چې د هغې مقدار به في الحال د دولس لکه روپو نه زیات نۀ وي امیر صاحب ته په طور د ماجب ورکوي.

☆ حکومت برطانیه به هر هغه کس چې څوک امیر صاحب پخپل ژوند کښې خپل ولیعهد مقرر کړي د هغۀ جائز جانشین تسلیموي. او څۀ وخت چې هغه د کابل په تخت کښیني نو هم هغه هومره ماجب به حکومت برطانیه هغۀ ته هم ورکوي چې کوم امیر صاحب ته ورکیدے شو.

☆ حکومت برطانیه دا اقرار کوي چې کۀ چرې روس یا د هغۀ زیر اثر بل حکومت د افغانستان په موجوده مقبوضاتو باندې وبلوسیدلو نو هغوي به امیر صاحب سره په شریکه د وسلې په زور د هغې مقبوضاتو حفاظت کوي. د دې دریم اقرار متعلق لارډ

ليټن چيمبر لين ته ليکلي وو چې دا اقرار تهٔ هله پسته په ځان تسليم کړه چې امير صاحب پخپله ستا نه د هغې مطالبه وکړي ولې ورومبني دوه اقرارونه تهٔ د خپلې خلې نه په ځان قبول کړه.

دا خلاصه وه د هغې هداياتو چې کوم حکومت هند د انگريزي مشن مشر ته د رهنمايي دپاره ورکړي وو دې کښې شک نشته چې دا شرطونه نسبتاً د هغې شرطونو نه کم سخت وو چې سر لوئي پيلي ورومبے نور محمد شاه مرحوم ته پيش کړي وو ولې په کومه طريقه چې لارډ ليټن چيمبرلين ته د کابل په طرف د روانيدو متعلق هدايات ورکړي وو هغه د يو ازاد او خودمختار بادشاه دپاره دومره سخت د سپکاوي او د بې عزتۍ وو چې د امير شير علي خان دپاره په هغه طريقه انگريزي مشن په افغانستان کښې د داخليدو اجازت ورکول ناممکن وو. لکه چې څرنگ د دې هداياتو نه صفا معلوميږي چيمبر لين ته دا حکم وهٔ چې تهٔ د امير صاحب د منظورۍ رارسيدلو نه بغير کابل ته په شپاړسم ستمبر سمدستي روان شه او د دې هيڅ پروا مهٔ کوه چې د امير صاحب مقامي افسران ستا په لاره کښې مزاحم کيږي بلکې مشن دې تر هغې پورې پخپله لاره روان اوسي تر څو پورې چې څوک هغوي د وسلې په زور دلارې نه راوانهٔ ړوي. کوم يو ازاد حکومت د بل حکومت نه يو دوستانه سفارت په دې طريقه باندې قبلولے شي. کوم خودمختار قوم د بل قوم سفارت ته په خپل ملک کښې په زور د راتللو اجازت ورکولے شي. کوم غيرتمند بادشاه به دا برداشت کړي چې د هغهٔ په صدر مقام کښې دې د پردي قام افسران د هغهٔ د مرضۍ نه خلاف رانوځي. لارډ ليټن ته هم دا معلومه وه چې شير علي خان به هيڅ شان دا سپکاوے دا ذلت او دا بې عزتي په ځان قبول نهٔ کړي ولې هغهٔ خو د خدائے نه هم دا غوښتل چې ماله يوه داسې موقع په لاس راشي چې زهٔ امير شير علي خان او پښتنو ته په هغې کښې انگريزي طاقت يو ځل بيا وښيم او دنيا ته دا ښکاره کړم چې د طاقتور حکومت برطانيه د شرطونو د نهٔ قبلولو څهٔ نتيجه وي.

کوم تجويز چې لارډ ليټن په تحرير کښې په دې ورځو کښې خپل کونسل ته پيش کړے وهٔ د هغې نه دا شان معلوميږي چې هغهٔ د شير علي خان د انگريزي سفارت د نهٔ قبلولو په صورت کښې قريباً قريباً د ټول افغانستان د اخستو اراده کړې وه او دا رائ ئ ښکاره کړې وه چې کهٔ چرې انگلستان يو ځل ځان په افغانستان کښې قائم کړو او د هندوکش درې سره د فيض اباد، قندوز، بلخ او هرات زمونږ په قبضه کښې راغلل نو بيا کهٔ چرې د روس او د فيرنگيانو مقابله په دريائے آمو باندې راغله نو فيرنگيان به يقيني طور کامياب شي او بيا به نهٔ صرف په افغانستان کښې بلکې په ټول وسط آيشيا کښې انگريزي اقتدار او اثر قائم شي اگر چې د هغهٔ اراده په دې ټول تجويز باندې د سمدستي عمل کولو نهٔ وه. خو د دې تجويز د اخري کاميابۍ او تکميل دپاره هغهٔ في الحال دا ضروري گڼل چې يو خو دې په درهٔ کرم

سمدستي فوځي قبضه وشي بله دا چې په کوئټه کښې دې دومره فوځ راجمع کړې شي چې د هغې په وجه قندهار بالکل د انګريزي فوځونو په زد کښې راشي او دريمه دا چې ټول سرحدي قبائلو سره دې د انګريزانو بلاواسطه تعلقات د دې غرض دپاره پيدا کړې شي چې هغوي د امير صاحب نه د انګريزانو په طرف راواوړي.

لوستونکو ته به ياد وي چې په درۀ کرم باندې د قبضې کولو تجويز وړومبے لمسډن او جنرل لارډ رابرټس او د دې دويمې خبرې تجويز ګرين او سنډيمان کړے وۀ. او دريمې خبرې باني کمناري وۀ. لارډ ليټن دا وخت هم د دې افسرانو په لاس کښې وۀ او په دې دريو خبرو باندې د سمدستي عمل کولو نه د هغۀ دا پخه طمع وه چې د افغانستان بادشاه به اخر زۀ د خپلو شرطونو په منلو باندې مجبور کړم.

نواب غلام حسين خان په لسم ستمبر کابل ته ورسيدو او په دولسم تاريخ امير شير علي خان هغۀ سره ملاقات وکړو. د دې ملاقات په دوران کښې شير علي خان هغۀ له د پيښور د کمشنر يوه چيټهي ورکړه چې هغه د نواب موصوف په نوم ليکلې شوې وه او هم په دغه ورځ د امير صاحب ډاکي کابل ته ځان سره راوړې وه. شير علي خان نواب غلام حسين خان ته ووئيل چې تۀ دا چيټهي پرانزه او زما په مخکښې ئې ولوله. په دې چيټهي کښې د پيښور کمشنر هغۀ ته ليکلي وو چې انګريزي مشن به په شپاړسم يا په اوولسم ستمبر د پيښور نه کابل ته روان شي خواه تر هغې پورې تا امير صاحب سره ملاقات کړے وي کۀ نه. بله خبره ئې ورته دا ليکلې وه چې د دې مشن غرض دوستانه دے نو کۀ چرې امير صاحب هغوي ته د راتلو اجازت ور نۀ کړو او يا ئې د هغوي په لاره کښې مزاحمت وکړو نو د هغۀ دا فعل به د دشمنئ فعل ګڼلے شي. د دې نه وړاندې بيا کمشنر هغۀ ته ليکلي وو چې تۀ په ډير شتاب کابل ته ځان ورسوه او کۀ چرې ستا په لاره کښې څوک مزاحم کيږي نو تۀ هغوي سره کلکه رويه اختيار کړه. دا خط کمشنر په دې خيال غلام حسين خان ته استولے وۀ چې په لاره به هغۀ ته دا ورکړې شي مګر غلام حسين خان د دې نه وړومبے کابل ته رسيدلے وۀ او خط د امير صاحب لاس له ورغلو.

دې کښې شک نشته چې دا خط د غلام حسين خان په نوم وۀ او د امير صاحب دا حق نۀ وۀ چې هغه ئې لوستې وے مګر د هغۀ په وينا غلام حسين خان هغۀ ته د چيټهي مضمون ولوستو او په دغه شان هغه د خط د مطلب نه واقف شو. ولې څۀ وخت چې وائسرائے ته د دې ټولې واقعې حال معلوم شو او دا ورته پته ولګيده چې شير علي خان په ډير هنر ځان زمونږ د خفيه هداياتو نه خبردار کړو نو ډير برافروخته شو او بالکل خلاف واقعه ئې د دې معاملې اطلاع وزير هند ته په تار کښې دا ورکړه چې شير علي خان د حکومت هند يوه داسې خفيه چيټهي پرانستې ده چې کومه هغوي خپل افسر ته ليکلې وه.

د پېښور کمشنر واټر فيلډ وۀ هغۀ علاوه د غلام حسين خان د خط نه هم د دې مضمون خطونه د علي مسجد، د ډکې او د جلال اباد ګورنرانو ته او يو خط مستوفي ته هم بلاواسطه ليکلے وۀ. حالانکې دا ټول افسران د امير شير علي خان نوکران وو او دا قسم خطونه هغوي ته بلاواسطه ليکل د حکومت هند دپاره بالکل ناجائز وو. هر کله چې امير صاحب د غلام حسين خان د خط د مضمون نه واقف شو نو ډير برافروخته شو او غلام حسين خان ته دا شان مخاطب شو. " زۀ د مشن په دې
طريقه راتلو باندې بالکل رضا نۀ يم تر څو پورې چې زما افسرانو ته زما د طرف نه حکم نۀ دے رسيدلے دا مشن څۀ رنګ راتلې شي. دا خو دا شان خبره ده لکه چې هغوي ما رسوا کوي. په دې طريقه په ما باندې دباؤ اچول ډير ناجائز دي. د دې نتيجه به مکمل قطع تعلق او د دوستئ ختميدل وي. زۀ هم هغه شان د انګريزانو دوست يم لکه چې څرنګ وړومبے وم او زما په زړۀ کښې هغوي ته هيڅ بدنيتي نشته. روسي مشن دې کښې شک نشته چې راغلے دے ولې زما په اجازت راغلے دے. زۀ لا هم هغه شان د زوي په مرګ باندې غمژن يم او لا تراوسه پورې ما په دې معامله غور او فکر نۀ دے کړے. هر کله چې ما سره وخت پيدا شي نو څۀ چې زۀ مناسب ګنم هغه شان عمل به وکړې شي. په دا شان واقعاتو کښې د انګريزانو چې څۀ خوښه وي هغه شان کار کولے شي."

اګر چې په دې الفاظو کښې امير شير علي خان د غصې او د جوش په حالت کښې دا خبره تسليم کړې ده چې روسي مشن زما په اجازت راغلے دے ولې حقيقت هم هغه دے چې کوم مونږ وړومبے ليکلے دے يعنې دا چې څۀ وخت روسي مشن دريائے آمو ته راورسيدو او روسي فوځونه هم د افغانستان په طرف راروان شول نو امير صاحب د ناکام نه هغوي ته د راتلو اجازت ورکړو. مګر چونکې د دې مجبورئ تسليمول د هغۀ دپاره يو قسم بې عزتي او کمزوري وه په دې وجه هغۀ غلام حسين خان ته دا ووئيل چې روسي مشن زما په اجازت راغلے دے. ولې هر کله چې امير صاحب او د هغۀ وزيرانو په دې خبره فکر وکړو چې لارډ ليټن به ضرور د دې فقرې نه ناجائزه فائده وچته کړي نو د دې وينا په دويمه ورځ د امير صاحب وزير غلام حسين خان ته ووئيل چې واقعه دا ده چې امير صاحب روسيان پخپله کابل ته نۀ دي رابللي بلکې څۀ وخت چې هغوي د دريائے آمو نه راپورې وتل نو چونکې ټول افغانستان په غير محفوظ حالت کښې پروت وۀ او انګريزانو سره هم د افغانستان ناچاقي وه له دې کبله امير صاحب مجبوراً هغوي له د راتلو اجازت ورکړو.

د روسي مشن د رخصتيدو متعلق وزير نواب ته ووئيل چې بعضې روسي ملازمان ناجوړه دي او هر کله چې هغوي جوړ شي نو امير صاحب به هغوي په مناسبه طريقه رخصت کړي او د هغې نه پس به هغه يو اعتباري قاصد د انګريزي مشن د راوستو دپاره وليږي او د

هغوي د هر قسم د حفاظت ذمه داري به په خپل سر واخلي.

نواب غلام حسین خان د دې خبرو رپورټ سره حکومت هند ته دا رائ ظاهره کړه چې د روسي مشن رخصتیدل او د انګریزي مشن رابلل به د اختر نه پس سمدستي وشي. د دې نه پس په پنځلسم ستمبر نواب غلام حسین خان یو بل خط حکومت هند ته ولیکلو چې امیر صاحب في الحال په ښهٔ طبیعت کښې نهٔ دے او د غم او بیمارۍ په سبب هغه ستاسو د هغه خطونو برداشت نشي کولے چې کوم ورته تاسو کله په سخت او کله په نرمو الفاظو کښې لیکئ. مخکښې ئ دا هم ورته ولیکل چې د امیر صاحب د وزیرانو دا امید شته چې ټول معاملات به په ښهٔ شان سره طے شي. او زما دا یقین دے چې د مزید بحث مباحثې دپاره لا موقع شته په شرط د دې چې انګریزي مشن په افغاني علاقه کښې داخلیدل د څهٔ وخت دپاره ملتوي کړي.

دې خوا خو د نواب غلام حسین خان او د امیر صاحب د وزیرانو تر منځ دا خبرې رواني وے او بل خوا کمناري د علي مسجد او د جم د منځ افریدو سره دا خبرې راخستې وے چې تاسو انګریزي مشن ته په خپله علاقه کښې کابل ته د تلو دپاره لار ورکړئ. حالانکې ټول افریدي په دې زمانه کښې د امیر صاحب رعایا ګڼلي شول نه چې د انګریزانو. پس څهٔ وخت چې فیض محمد خان د علي مسجد ګورنر ته دا خبره معلومه شوه نو هغهٔ د افریدو ټولو ملکانو ته حکم واستولو چې فوراً خپلو خپلو کلو ته واپس راشئ. د دې حکم په راتلو سره افریدو کمناري ته ووئیل چې مونږ د امیر صاحب ماجب خوارهٔ یو نو کهٔ چرې مونږ د دې حکم تعمیل ونهٔ کړو نو هغه به زمونږ ماجبونه سمدستي بند کړي نو یا خو مونږ له رخصت راکړه چې خپلو خپلو کلو ته لاړ شو او یا کوم ماجبونه چې مونږ له امیر صاحب راکوي هغه تاسو راکوئ چې مونږ د امیر صاحب نه ستاسو پرې ته را واوړو. کمناري ته خو دا معلومه وه چې کهٔ چرې فیرنګیانو افریدو سره د ماجب ورکولو اقرار وکړو نو دا ښکاره په ښکاره امیر صاحب سره دشمني کول دي. او امیر صاحب به دا خیال وکړي چې دا خو بالکل دوستانه مشن نهٔ دے بلکې د یو حمله آور فوځ هراول دے. له دې کبله هغهٔ دا ټوله معامله د تار په ذریعه لارډ لیټن ته پیش کړه. لارډ لیټن هغهٔ ته په جواب کښې ولیکل چې مونږ له افریدو سره په جدا بندوبست کولو سره امیر صاحب له د جائز شکایت موقع په لاس ورکول نهٔ دي پکار. تر څو پورې چې هغه د مشن په لاره کښې ښکاره مزاحمت ونکړي. په دې وجه تهٔ د دې معاملې سر ته د راوستو دپاره د علي مسجد ګورنر ته یو خط ولیکه چې انګریزي مشن سمدستي د کابل په طرف روانیدونکے دے نو تهٔ مونږ ته صفا جواب راکړه چې آیا تهٔ په درهٔ خیبر کښې د هغوي د حفاظت ذمه واري اخلې او کهٔ نا. کهٔ چرې هغهٔ جواب په او کښې درکړو نو بیا خو افریدو ته اجازت ورکړه چې خپلو خپلو کورونو ته لاړ شي او کهٔ چرې هغهٔ

جواب په نفي کښې درکړو او یا ئ د جواب ورکولو نه ګریز وکړو نو بیا دې چیمبرلین افریدو سره جدا بندوبست وکړي او په درهٔ خیبر دې ورننوځي او فیض محمد ته دې ووائي چې کهٔ څهٔ پیښ شو نو د هغې به تهٔ ذمه وار ئ.

چیمبرلین د لارډ لیټن د وینا مطابق فیض محمد خان ته خط ولیکلو. فیض محمد خان د دې خط یو ډیر معقول او صفا جواب ورکړو. هغهٔ چیمبرلین ته ولیکل چې انګریزي مشن ته د دې هیڅ ضرورت نشته چې هغوي افریدو سره د بدرګې دپاره جدا بندوبست وکړي کهٔ چرې امیر صاحب ستاسو د راتلو اجازت ورکړو نو بیا به زهٔ او زما فوځ عین تر ډکې پورې ستاسو په بدرګه کښې لاړ شو خواه افریدي تاسو سره ملګري وي او کهٔ نهٔ وي. ولې مونږ خو نوکران یو او د خپل مالک د حکم تابع یو. نو کهٔ چرې انګریزي مشن د امیر صاحب د منظورۍ نه بغیر په درهٔ خیبر کښې رانوتو نو زما د فوځ او د افریدو به ضرور تاسو سره جګړه وشي. د دې نه مخکښې هغهٔ چیمبرلین ته ولیکل چې میر آخور د ډکې نه د علي مسجد په طرف راروان دے او شاید چې هغهٔ خان سره څهٔ احکام راوړي وي ولې وراندې ستاسو اختیار دے چې کهٔ په پیښور کښې حصاریږئ او کهٔ سمدستي په زور باندې راروانیږئ.

د دې جواب په رسیدو چیمبرلین وروميے خو دا خیال وکړو چې نیغه یوه چیټۍ میر آخور ته د دې مشن د روانیدو متعلق لیکم ولې هغهٔ ته په دې اثنا کښې معلومه شوه چې میر آخور علي مسجد ته رارسیدلے دے نو کهٔ چرې هغهٔ څهٔ احکام راوړې وے نو ماته به ئ ضرور خبر راکړے وهٔ. پس هغهٔ امیر آخور ته د خط لیکلو خیال پریښودو او وائسرائے ته ئ پخپل رپورټ کښې ولیکل چې ما میر آخور ته ځکه جدا خط ونهٔ لیکلو چې هسې نه حکومت افغانستان دا خیال وکړي چې د کوم څیز مطالبه مونږ په طور د استحقاق کولے شو هغه مونږ د هغوي نه په طور د رعایت غواړو. د چیمبر لین دا رائ درحقیقت بالکل ناجائزه وه ځکه چې د افغانستان او د حکومت برطانیه په منځکښې داسې هیڅ معاهده نهٔ وه شوې چې د هغې په ذریعه د حکومت برطانیه افغانستان ته خپل مشن په طور د استحقاق رالیږلے وے بلکې د دې نه قبل څلور وائسرائے ګانو د امیر صاحب دا حق تسلیم کړے وهٔ چې هغه د انګریزي مشن د قبلولو نه انکار کولے شي.

کومه چیټۍ چې نواب غلام حسین خان په پنځلسم ستمبر لیکلې وه هغه چیمبرلین ته په نولسم راورسیده. د دې چیټۍ په لوستو چیمبرلین ډیر برافروخته شو او د هغې مضمون ئ سره د خپلې رائ وائسرائے ته د تار په ذریعه واستولو. په دې تار کښې هغهٔ دا رائے ظاهره کړه چې امیر صاحب سره زمونږ خبرې اترې د صلح په طریقه کیدل ناممکن معلومیږي. هغه دا خیال کوي چې زهٔ د مشن په پریښودو او نهٔ پریښودو کښې بالکل ازاد یم او دا وائي چې

هر کله زما خوښه وي نو زۀ به انګريزي مشن را وغواړم. پس مناسب دي چې نواب غلام حسين خان فوراً واپس راوغوښتې شي څکه چې د امير صاحب ټولو افسرانو مونږ ته په صفا الفاظو کښې وئيلي دي چې مونږ به مشن په زور د راتلو نه منع کوؤ.

د دې تار په دويمه ورځ هغۀ دوه نور تارونه وائسرائے ته د دې مضمون ورکړل چې افريدو ملکانو زمونږ مشن تر علي مسجد پورې د بوتلو ذمه اخستې ده پس زمونږ مشن به سبا له په جمرود کښې پړاؤ کوي او بل سبا له به کمناري سره د يو څو تنو سرو علي مسجد ته روانيږي نو کۀ چرې فيض محمد خان مشن له د علي مسجد نه د وړاندې تيريدو اجازت ور نۀ کړو نو مونږ به د هغۀ د انکار نه دا شان تصور کوؤ لکه چې هغۀ په مونږ باندې ډزې کړے وي او بيا به مونږ پيښور ته واپس راځو.

لارډ ليټن د چيمبرلين دې رائې سره مکمل اتفاق وکړو چنانچه کمناري د چيمبرلين د تجويز مطابق يو څو تنو سرو سره د جمرو نه مخکښې د علي مسجد په طرف ور روان شو او د لاله چينې په خوا کښې غونډو سره د امير صاحب سرو هغوي منع کړل او د کمناري ټولي ته ئې وئيل چې کۀ چرې نور راوړاندې شوئ نو مونږ به درباندې ډزې وکړو. فيض محمد خان پخپله هم د هغوي مخې ته راووتو او لکه چې څرنګ هغۀ پخپله چيتي کښې ليکلي وو هم هغه شان خبرې ئې زباني کمناري ته ښۀ په زوروتيا او کلکو الفاظو کښې وکړې. د کمناري او د فيض محمد خان په منځ کښې دا ملاقات په خوړ کښې د يوې ژرندې په خوا کښې وشو. د فيرنګيانو د طرف نه علاوه د کمناري نه کرنل جينکنز او دوه درې تنه د ګائيډ د رسالې، څۀ افريدي ملکان او دوه تنه هندوستانيان د يو نوم سردار عبدالله خان د ټرنک او د بل نوم مهاراجه پرتاب سنګهه د جودهه پور وو (دا دواړه کسان د دوؤ هندوستاني رياستونو نمائنده ګان وو چې د لارډ ليټن په وينا د چيمبرلين مشن سره ملګري شوي وو) موجود وو. د پښتنو د طرف نه علاوه د فيض محمد خان نه مير آخور نائب او د علي مسجد د قلا د فوځ يوه دسته او ډير افريدي ملکان موجود وو. کرنل هنا د دې دوؤ ټولو په منځکښې د خبرو اترو خلاصه په خپل کتاب جلد اول صفحه 222-221باندې دا شان ورکړې ده:

" Cavagnari opened the discussion by pointing out that Faiz Muhammad and he were servants of their respective Govrenments, met to carry out the orders they had received, so that whatever the result of their meeting, there need be nothing personal between them; a sentiment in which the Governor of Ali Masjid cordially concurred. But when the british officer went on to ask whether the officials at Ali Masjid had been introduced to guarantee to the mission safe passage and proper treatment, and to express the hope that if there were any latitude in the orders received from Kabul,

Faiz Muhammad, would use in the interest of peace- the Afghan officer, though still courteous, was quite unyielding. His desire to act in a friendly manner had been evinced by his having permitted Ghulam Hussain Khan to pass his post an act of politeness for which he had been blamed by the Durbar; he was proving it, at that very moment, by concerting to that interview, and by restraining his troops from firing on the British Party; but he had received no orders to let the mission enter the Khyber and, without such orders, he could not allow it to proceed. If the mission would wait, he would communicate with Kabul and ask for instructions. Cavagnari replied that he had no authority to agree to further delay; he was there to say that the mission would move forward next morning, unless the Afghan officials distinctly stated that its advance would be opposed; and once again he begged Faiz Muhammad Khan not to take upon himself the responsibility of stopping the mission, unless his instructions constrained him to do so, for, whatever his action, it wuld be considered as the Amir's. The Afghan Commander owned the greatness of the responsibility, but could only repeat that he stood there as a sentinel at his post, and without the orders of the Amir, the mission should not pass.

"But how do you know" asked Cavagnari, "that the Amir will not be angry with you for trying to stop the reprersentative of a Govt; with which he has long been on friendly terms?"

Then Faiz Muhammad grew warm; "Friendly? What friendship was there in the british Govt's present conduct? If the Amir had given the word, he himself would have gone down to Jamrud to meet the mission and bring it up the pass, but now the British had come on their own account, and had bribed the Amir's servants to give them a passage. They
were setting Afridies against Afridies, would cause bloodshed and strife in the country- and they called themselves friends."

The Afridies who were standing round applauded this speech, and there was an uneasy movement among them which convinced Cavagnari and Jenkins that it would be imprudent to allow the conversation to continue in this tone. The former, therefore, interrupted the Khan by saying that the subject was not one for the subordinates to discuss; and then asked, for the last time, whether the Governor of Ali Masjid would oppose the passage of the mission by force. The answer came quick and sharp:-

"Yes, I will; and you may take it as kindness, and because I remember friendship, that I do not fire upon you for what you have done already. You have had a straight answer", he added, as the English officers shooks hands with him and mounted their horses.

An answer so straight that it left nothing more to be said; so Cavagnari and Jenkins rode back to Jamrud to report their failure, and to bear testimony to the courtesy of the Afghan Governor, who in Cavagnari's opinion, had softened down a

great deal of the insult intended, and prevented a collision between his followers and the little British Party;[1] which must have proved fatal to the latter.[2]

1. Afghanistan No. (1878) Page 251.

2. It was natural that Cavagnari sould feel grateful to the man whose firmness and temper had been his and his companion's sole protection in a most critical hour; but in doing justice to the subordinate, he struck an underserved blow at the principal. All through this miserable; business Sher Ali's behaviour was that of a bewildered, illused man, struggling to preserve his prestige in the eyes of his own

subjects, but is no war eager to provoke a collision with the neighbour whose power to crush him, individually; he sadly recognised; and it is far more likely that Faiz Muhammad strictly carried out his master's commands in delaying, but not insulting the members of the mission, then that he received order to offer them provocation, which orders he took upon himself to disobey.

ترجمه : کمناري د خبرې سر کښېښودو او فیض محمد ته ئې ووئیل چې ته او زهٔ دواړه د خپل خپل حکومتونو نوکران یو او د هغې حکمونو دپاره راغلي یو کوم چې مونږ ته راکړي شوي دي نو زمونږ د دواړو د ملاقات هر څهٔ نتیجه چې وي خو پکار دي چې زمونږ ذاتي خفګان پکښې نهٔ وي. دې خبرې سره د علي مسجد ګورنر ښهٔ په خوشحالۍ اتفاق وکړو مګر هر کله چې دې انګریزي افسر د هغهٔ نه دا تپوس وکړو چې آیا د علي مسجد (پښتنو) افسرانو ته څهٔ هدایات راغلي دي چې هغوي دې د مشن په حفاظت سره د راتیریدو او د ښهٔ سلوک ذمه واري په سر واخلي او هر کله چې کمناري دا ووئیل چې کهٔ چرې په هغه احکامو کښې چې کوم د کابل نه راغلي دي څهٔ ګنجائش هم وي نو زهٔ امید کوم چې فیض محمد خان به هغه ګنجائش د امن په حق کښې استعمال کړي. نو فیض محمد خان اګر چې په خوش خلقۍ هغهٔ ته جواب ورکړو ولې د دې خبرې د منلو نه ئې بالکل انکار وکړو. هغهٔ کمناري ته ووئیل چې زما دوستانه رویه خو د دې خبرو نه ښکاره ده چې ما غلام حسین خان ته د خپلې څوکۍ نه د تیریدو اجازت ورکړو حالانکې په دې باندې زهٔ د دربار امیرانو ملامت کړے یم. او دا دوستانه رویه اوس زما د دې خبرې نه هم ښکاره ده چې زهٔ تاسو سره دا وخت په جرګه کښې لګیا یم او خپل سپاهیان مې په تاسو باندې د ډزو کولو نه منع کړي دي. مګر ماته د انګریزي مشن په خیبر کښې ډ رانوتو په حقله هیڅ احکام نهٔ دي راغلي او بغیر د حکم نه زهٔ تاسو وړاندې تللو ته نشم پرېښودلې. کهٔ چرې مشن حصار شي نو زهٔ به کابل سره خط و کتابت وکړم او هدایات به را وغواړم. کمناري په جواب کښې ووئیل چې ما ته دا اختیار نشته چې نور ډیل دې کار له ورکړم. زهٔ خو صرف د دومره وئیلو دپاره دلته راغلے یم چې مشن به سبا له روانیږي. تر څو پورې چې د پښتنو افسران ماته صاف طور دا ونهٔ وائي چې مونږ به هغوي په زور منع کوؤ.

د دې نه پس هغهٔ يو ځل بيا فيض محمد ته منت وکړو چې تهٔ د مشن د بندولو ذمه واري په خپل سر مهٔ اخله تر څو پورې چې د احکامو نه مجبور ئ ځکه چې تهٔ هر څهٔ چې وکړې خو هغه به د امير صاحب کار ګڼلے شي. افغان کماندر تسليم کړه چې دا زما يوه لويه ذمه واري ده مګر دا ئ ورسره ووئيل چې زهٔ خو په طور د سنتري په خپلې څوکۍ باندې ولاړ يم او بغير د امير صاحب د حکم نه زهٔ مشن تيريدو ته نشم پريښودے.

مګر تهٔ څهٔ خبر ئ کمناري د فيض محمد خان نه تپوس وکړو چې امير صاحب به د تا نه په دې نهٔ خفه کيږي چې تهٔ د يو داسې حکومت نمائنده د تلو نه بند کړې چې هغې سره د امير صاحب د ډير عمر نه دوستانه تعلقات راغلي دي. په دې خبره فيض محمد ګرم شو او کمناري ته ئ ووئيل کهٔ څهٔ دوستانه؟ د حکومت برطانيه په موجوده طرز عمل کښې د کوم قسم دوستي ده؟ کهٔ چرې امير صاحب ماته جواب کړے وے نو زهٔ به پخپله جمرود ته تلے وم او د مشن استقبال به مې کړے وهٔ او په دره به مې راتير کړے وهٔ. ولې دا وخت خو فيرنګيان پخپله خوښه راروان شوي دي. هغوي افريدي د افريدو خلاف پاڅوي او په ملک کښې خونريزي او د خانه جنګۍ د پيدا کولو کوشش کوي.

په دې تقرير افريدو چې چارچاپيره ولاړ وو شاباشے ووئيلو او په خپلو کښې سره دا رنګ په بې صبرۍ وخوزيدل راوخوزيدل چې د کمناري او د جينکنز دا تسلي وشوه چې په دې شان د بحث مباحثې جاري ساتل څهٔ هوښيارتيا نهٔ ده له دې کبله کمناري خبره پريکړه او وې وئيل چې په دې مضمون باندې بحث کول زمونږ د ماتحتانو کار نهٔ دے او بيا ئ اخري ځل د هغهٔ نه تپوس وکړو چې آيا فيض محمد خان به د مشن تګ په زور باندې بند کړي. د دې په جواب کښې فيض محمد خان په چستۍ او سمدستي جواب ورکړو او ورته ئ ووئيل چې او زهٔ به ئ په زور بند کړم او دا زما مهرباني وګڼه ځکه چې زهٔ دوستي نهٔ هيروم چې ما تراوسه پورې په تا ډزې نهٔ دي کړې. بيا ئ کمناري ته مخ راواړولو او ورته ئ ووې چې ما خو درته سم جواب درکړو کهٔ نه. په دې انګريزي افسرانو هغهٔ له لاس ورکړو او په خپلو اسونو سوارهٔ شول.

دا جواب په واقعه کښې دا شان سم وهٔ چې د هغې نه پس د نورې وينا څهٔ ګنجائش پاتې نشو له دې کبله کمناري او جينکنز دواړه واپس جمرود ته راغلل او د خپلې ناکاميابۍ رپورټ ئ وکړو او دا شهادت ئ وکړو چې د پښتنو ګورنر هغوي سره په خوش اخلاقۍ پيش راغلو. کمناري دا رائ هم پيش کړه چې د پښتنو ګورنر په هغې بې عزتۍ کښې ډير کمے راوستو چې د کومې پيش بندۍ د وړومبي نه شوې وه او د خپلو سرو او د فيرنګيانو د دې وړوکي ټولۍ 1 تر منځ ئ تصادم کيدو ته پرې نهٔ ښودو. او کهٔ چرې دا تصادم پيښ شوے وے نو ضرور به د فيرنګيانو د ټولۍ دپاره مهلک ثابت شوه وه2.

1. افغانستان نمبر 1878صفحه 251

2. دا قدرتي خبره وه چې کمناري دې د يو داسې سړي ممنون شي چې د چا مضبوطوالے او طبيعت د هغۀ او د هغۀ د ملګرو دپاره په يو نازک وخت کښې د سلامتي واحده وسيله وه. مګر د دې ماتحت سړي په تعريف کولو کښې هغۀ د هغۀ مالک ته يو ناجائز نقصان ورسولو. په دې ټولې افسوسناکې معاملې کښې د شير علي خان طرز عمل د هغې کس په شان وۀ لکه څوک سخت پريشان وي او ورسره ناجائز سلوک شوے وي او دا کوشش کوي چې د خپل رعيت په نظر کښې خپل وقار وساتي ليکن د دې خبرې بالکل خواهش مند نۀ وي چې زۀ يو داسې ګاونډي سره په ټکر شم چې په هغۀ کښې زما د تباه کولو طاقت مسلم دے او دا خبره ډيره اغلبه معلوميږي چې فيض محمد خان د مشن خلقو له ډيل ورکولو او د هغوي بې عزتي نۀ کولو کښې هم د خپل مالک د احکامو پوره پوره تعميل کړے دے. نه دا چې فيض محمد خان له حکم ورکړے شوے وۀ چې تۀ انګريزي مشن له اشتعال ورکړه خو فيض محمد خان په خپل سر د دې حکم د نۀ منلو ذمه واري واخسته.

د علي مسجد نه د کمناري د راواپس کيدو خبر لارډ ليټن ته په تار کښې ورکړې شو. هغۀ حکم راوليږلو چې مشن دې ختم کړې شي. د دې نه پس لارډ ليټن په ډير جوش سره په افغانستان باندې د لام ترلو دپاره فوځي تيارۍ شروع کړې.

په کومه طريقه او په کومو سياسي چالبازو چې لارډ ليټن، امير شير علي خان سره د حکومت انګريزي تعلقات د سختې کشيدګۍ حالت ته راورسول په هغې باندې مونږه خپله رائۀ نۀ ظاهروؤ او نۀ په هغې باندې نوره نکته چيني کوؤ ولې په هغه زمانه کښې چې کومه رائۀ د هغۀ د دې ټولې کارروايۍ متعلق د بعضې غير جانبدار او منصف مزاج انګريزي سياستدانانو وه د هغې يوه نمونه په طور د مثال مونږ د کرنل هنا دا لاندې رائۀ لوستونکو ته پيش کوؤ:

" From his own point of view Lord Lytton had played his cards well; so well that, both at home and in India, the great majority of Englishmen honestly believed at the time, and many believe to this day, that Sher Ali was faithless and forsworn, their races implacable enemy, Russia's secret ally, a prince whom honour, patriotism and the instinct of self-preservation alike called upon them to crush, and they could therefore follow the Viceroy into the contest which he had provoked, without any inconvenient misgivings of conscience; whilst the few men who knew that Sher Ali was far more sinned against than sinning, and who spoke out boldly in his favour, could not gam credence for their defence of a man whom public opinion had already condemned.[1] The cloud of passion which darkened men's minds in those days, has melted away with the lapse of time; but much of the misconception and ignorance, out of which it sprang, still lingers. To dispel there is no useless task, since there is always danger of the past's repeating itself, so long as men have not been brought to see its errors; and there is no better way of

dispelling them in this case, than by asking ourselves whether, without prejudice to India, or disgrace to England, the war which had now become inevitable, might not have been averted.

Taking into account Lord Lytton's prejudice against Sher Ali his fears of Russia, his visions of conquest, his expectations of sudden and easy success, and also the characters and ambitions of the men by whom he allowed himself to be influenced- no other line of conduct than that which he pursued could have been expected of him. The situation, however might have been very differently treated; and in the hands of a man of Lord Lawrence's views and cool judgement, or of Lord Mayo's sincerity of mind and chivalrous generosity, it would almost certainly have been used to re-establish the old friendship with Sher Ali on a farmer bases.

There was no need for haste, for if danger had ever threatened India from, or rather through, Afghanistan, it had passed away before Lord Cranbrook signified his assent to Lord Lytton's schemes for punishing the Amir for having suffered the visit of one mission, by inflicting upon him another. No one - not even Lord Lytton- had ever professed to believe that, except as the ally of Russia there was anything to fear from Afghanistan; and with the signature of the treaty of Berlin, the Russian Govt had abandoned all hostile intentions towards Great Britain. Recognising this, and recognising also that the Russia Mission had not come to Kabul by the Amir's invitation, but against his wish- a stateman really desirous of continuing at peace with that prince, would have no time in requesting the British Govt to call upon the czar to withdraw his officers from Afghanistan- a demand which, in the end, when it could have no influence on the course of events; was actually made and acceded to- and would, meantime, have let it be as widely known as possible that he did not hold Sher Ali responsible for the visit of the Russian Mission, nor see in his reception of it any intention to insult ourselves. Such a stateman would have made use of the terrible domestic and political misfortune which had befallen the Amir in the death of his son and heir, to renew diplomatic intercourse with him in a way that would have been as gratifying to the prince as it would have been honourable to the viceroy. He, too, would have sent a native Emissary to Kabul; but that Emissary would have been Ata Muhammad, or some Muhammadan noble man of whom it could, at least, be known that he was not personally distasteful to the Amir- not his old enemy, Ghulam Hussain; and the one letter entrusted to this messanger would have contained simply the expressions of the viceroy's sympathy and the assurance- sincere, not formal- that nothing should be done by the Indian Govt; to embarrass him at a time when he was suffering, not only the grief of a bereaved father, but the perplexities of a sovereign who had just witnessed the destruction of all his arrangements for the future of his kingdom.

In conversation with Afghan ministers, the Emissary, would have been empowered to take credit to his govt; for

having rid them of the incubus of the Russian mission, and to express the hope that when the Amir had recovered from the shock of his son's death and had settled once again the succession to the throne, he would take steps to renew his farmer intimate relation with Great Britain, either by inviting a British envoy to his court, or if he still felt that the subjects to be discussed were too important to be left to the judgement of any subordinate- by proposing a meeting between himself and the viceroy.

There can be no doubt that Sher Ali would have yielded to wishes so moderate in themselves, and so courteously expressed; all the more readily because of the proof that he would have just received in the withdrawl of Stolietoff's mission of the British govt; request, that he could not look to Russia to stand by him against her own immediate interests, and the fact that the reconciliation between him and Great Britain had been brought about at a moment when he not unnaturaly feared being called to account for his share in recent events, would have gone far to obliterate the remembrance of the injustice and harshness under which, for a time, he had had to suffer, and to restore his confidence in British good-will and good faith.

The line of action sketched above, if adopted by the Indian govt; would have proved eminently practical, for it would have attained its aims- the preservations of peace, and the restoration of good relations with the Amir;- the course actually pursued, tried by the tests of results, was eminently unpractical; for the war into which it plunged India secured known of the objects for which it was waged- neither British officers on the Afghan frontier, nor British influence paramount throughout Afghnaistan, nor even a weakers sovereign on the throne of Kabul."

ترجمه :" د خپل نقطۀ نگاه نه لارډ لیټن د خپل تاش پټې ښۀ په هنر وغورځولې په دا شان هنر چې هم په انگلستان او هم په هندوستان کښې د اکثر انگریزانو په هغه وخت کښې او د اکثرو تر نن ورځې پورې هم دا عقیده ده چې شیر علي خان یو بدعهده او دروغژن سړے وۀ د انگریزانو سخت دشمن او د روس پټ ملگرے وۀ او د انگریزانو دا فرض وو چې د خپل عزت، د حب الوطنی حفاظت او خوداختیاری په خاطر ئ هغه تباه کړے وے. په دې وجه هغوي وائسراے سره په دې جنگ کښې چې کوم هغۀ پنځپله رادوځاره کړے وۀ همخیال وو. بغیر د دې نه چې د ضمیر ملامتیا هغوي له څۀ تکلیف ورکړے وے او کومو لږو کسانو ته چې دا معلومه وه درحقیقت زیاتے په شیر علي خان شوے دے نه چې هغۀ زیاتے کړے دے او هغوي په زړورتیا د هغۀ په حق کښې وینا وکړه نو د هغوي په وینا هډوچا غوږ کښېنښود ځکه چې راۓ عامې هغه د وړومبے نه مجرم کړے وۀ. د قهر او د غصې کومه تیارۀ چې د خلقو په زړونو باندې په هغه ورځو کښې پرته وه هغه د زمانې په تیریدو خوره شوې وه مگر د کومو غلط فهمو او بې علمی نه چې دا خیالات پیدا شوي وو هغه تر ډیره حده پورې هم هغه شان

موجود دي. د دې غلط فهمو لرې کول بې سوده کار نهٔ دے ځکه چې هر وخت د دې خطره شته دے چې ګزشته واقعات بیا دهراؤ شي تر څو پورې چې خلقو ته د هغې واقعاتو غلطي نهٔ ده ښکاره شوے او په دې معامله کښې د دې غلط فهمو لرې کیدل د دې نه په بهتره طریقه نشي کیدے چې مونږ د ځان نه دا تپوس وکړو چې آیا دا جنګ بغیر د دې چې هندوستان ته څهٔ نقصان رسیدلے وے یا د انګلستان څهٔ بې عزتي شوے وے د کیدو نه نشو پاتې کیدے؟

کوم تعصب چې د لارډ لیټن په زړهٔ کښې د امیر شیر علي خان برخلاف موجود وهٔ کومه ویره چې د هغهٔ په زړهٔ کښې د روس متعلق وه د فتوحاتو کوم خیالات چې هغهٔ لرل او څرنګ چې د هغهٔ د سمدستي او د بې تکلیفه کامیابی طمع وه او د کومو کسانو چې په هغه باندې اثر وهٔ د هغوي طبیعتونه او د ترقی لالچ. کهٔ چرې مونږ په دې خبرو غور وکړو نو د دې ټولو څیزونو په موجودګی کښې د هغهٔ نه د بل شان کار هډو توقع نشوه کیدے. بغیر د هغې نه چې کومه هغهٔ اختیار کړه مګر هم دغه معامله په بل رنګ سر ته رسیدے شوه. او کهٔ چرې دا د لارډ لارنس غوندې وسیع الخیال او د سوړ عادت سړي یا د لارډ میو غوندې مخلص طبیعت او دلیر او فیاض سړي په لاس کښې وے نو یقیناً به هغوي دا موقع شیر علي خان سره زمونږ د زړې دوستی په نورو مضبوطو بنیادونو باندې د قائمولو دپاره استعمال کړې وه.

د جلدی کولو خو څهٔ حاجت نهٔ وهٔ ځکه کهٔ چرې هندوستان ته د افغانستان نه یا د افغانستان په ذریعه څهٔ خطره پیبنه شوې هم وه نو قبل د دې نه لارډ کرینبروک د لارډ لیټن دا تجویزونه شیر علي خان له د سزا ورکولو دپاره منظور کړے وے ځکه چې شیر علي خان یو مشن له د راتلو اجازت ورکړے دے، د دې دپاره بل مشن دې په زور هغهٔ له واستولې شي هغه خطره تیره شوې وه. نهٔ لارډ لیټن او نهٔ بل چا چرې دا خبره کړې ده چې د افغانستان نه ما سوائ د روس د اتحادي په حیثیت کښې چرې مونږ ته څهٔ خطره وي. او هر کله چې د برلن عهدنامه دستخط شوه نو روسي حکومت د حکومت برطانیه برخلاف ټولې د عناد ارادې پریښودې د دې خبرې مدنظر او بل دا چې روسي مشن کابل ته د امیر صاحب په دعوت نهٔ وهٔ راغلے بلکې د هغهٔ د مرضی نه خلاف راغلے وهٔ نو کهٔ چرې یو سیاستدان په رښتیا شیر علي خان سره په صلح د پاتې کیدلو خواهش مند وے نو هغهٔ به سمدستي حکومت برطانیه ته دا درخواست کړے وهٔ چې هغوي دې زار نه دا مطالبه وکړي چې هغه خپل افسران د افغانستان نه واپس راوبلي.( چنانچه په اخر کښې چې څهٔ وخت د واقعاتو په رخ باندې د هغې هیڅ اثر نشو کیدلې نو هم دغه مطالبه د زار نه وشوه او ومنلې هم شوه) او بیا په دې اثنا کښې هغهٔ دا خبره څومره چې ممکن کیدے شوه نو ډیره زیاته خوره کړې وه چې زهٔ د روسي مشن د راتلو ذمه وار شیر علي خان نهٔ ګنم او نهٔ په دې کښې هغهٔ زمونږ څهٔ بې عزتي کړې ده چې هغهٔ د

روسي مشن استقبال کړے دے. د دې قسم سیاستدان به د هغې زبردست کورني او سیاسي مصیبت نه فائده وچته کړي وه کوم چې په امیر باندې د خپل زوي او د وارث د مرګ په شکل کښې راپریوتې وۀ او هغۀ سره به ئ په دې موقع خپل سیاسي راشه درشه بیا د نوي سر نه په داسې طریقه راخستي وو چې هم به د امیر صاحب د رضامندۍ باعث شوي وو او هم د وائسرائے دپاره د عزت باعث وو. هغۀ به هم د دې وطن یو قاصد کابل ته استولے وۀ ولې دا قاصد به عطا محمد یا بل څوک مسلمان شریک النسب سړے وۀ چې د چا متعلق خلقو ته دومره خو معلوم وے چې دا سړے د امیر صاحب ناخوښه سړے نۀ دے. نه چې غلام حسین د هغۀ زوړ دشمن به ئ استولو. او بیا کوم قسم خط به چې هغۀ دې قاصد له ورکولو نو په هغې کښې به صرف د وائسرائے د همدردۍ اظهار وۀ او دا یقین به ئ په اخلاص نه چې په ظاهرداری هغۀ ته ورکړے وۀ چې حکومت هند داسې هیڅ څیز کول نۀ غواړي چې په هغې باندې امیر صاحب په یو داسې وخت کښې پریشان شي چې نۀ صرف هغه په حیثیت د یو غمژن پلار سر ګومه پروت دے بلکې په حیثیت د یو بادشاه هم دوجاله دے څکه چې کوم انتظام هغۀ د خپل حکومت د مستقبل دپاره جوړ کړے وۀ هغه درهم برهم شو.

دې قاصد ته به دا اختیار وۀ چې هغه د پښتنو وزیرانو سره په ګفتګو کښې د روسي مشن د افغانستان نه د رخصتولو سهره د خپل حکومت په سر ترلے وے او دا امید ئ هغوي ته ښکاره کړے وے چې هرکله امیر صاحب د خپل زوي د مرګ د صدمې نه روغ شي او د خپلې جانشینۍ معاملې یو ځل بیا فیصله کړي نو هغه به حکومت برطانیه سره خپل زاړۀ د دوستۍ تعلقات بیا د نوي سر نه د قائمولو کوشش وکړي. او یا خو به انګریزي سفیر خپل دربار ته مدعو کړي او یا کۀ چرې د هغۀ بدستور دا خیال وي چې په کومو معاملو بحث کول پکار دي هغه دومره اهمې دي چې د ماتحتانو فیصلې ته نشي پریښودې نو هغه به وائسرائے سره پخپله د ملاقات کولو تجویز پیش کړي.

دې کښې شک نشته چې شیر علي خاں به دا قسم معتدل مطالبات چې په داسې خوش اخلاقۍ هغۀ ته پیش شوې وے ضرور منلي وو او د دې منلو ته به هغه زیاتي په دې وجه هم تیار شوے وے چې د حکومت برطانیه په وینا د روسي مشن د واپس کیدلو نه به هغۀ ته دا ثابته شوې وۀ چې کۀ چرې یوه خبره د روس د فوري مفادو نه خلاف وي نو په هغه صورت کښې هغه بالکل زما په مرسته ودریدو ته تیار نۀ دے او دا چې د هغۀ او د حکومت برطانیه تر منځ به راضي نامه په یو داسې وخت کښې کیده چې قدرتاً د هغۀ په زړۀ کښې به دا ویره وه چې کومه حصه ما په موجوده واقعاتو کښې اخستې ده نو حکومت برطانیه به ما نه د هغې جواب وغواړي نو دې خبرې به د هغۀ د زړۀ نه د بې انصافۍ او د سخت سلوک یاد چې د څۀ وخت دپاره هغۀ سره شوے وۀ بالکل محوه کړې وۀ او د فیرنګیانو په نیک نیتۍ او ښۀ زړۀ

باندې به د هغهٔ اعتبار بيا پيدا شوے وهٔ.

کهٔ چرې حکومت هند دا طرز عمل چې کوم بره بيان شوے دے اختيار کړے وه نو دا به ډير د عمل قابل ثابت شوے وهٔ ځکه چې هغه به د خپلو مقصدونو په حصول کښې کامياب شوے وهٔ. يعنې د صلح په قيام او امير صاحب د ښهٔ تعلقاتو په پيدا کولو، مگر کوم طرز عمل چې په واقعه کښې اختيار کړې شو سخت ناقابل عمل ښکاره شو. کهٔ چرې مونږ د نتائجو په معيار هغې ته وګورو ځکه چې په کوم جنګ کښې چې د هغې په وجه هندوستان مبتلا شو په دې هغه يو مقصد هم چې د کوم د حصول دپاره هغه چيړلے شوے وهٔ حاصل نشو. يعنې نهٔ خو د افغانستان په سرحد باندې انګريزي افسران مقرر شو او نهٔ په افغانستان کښې انګريزي اثر وچت شو او نهٔ د کابل په تخت باندې څوک کمزورے بادشاه کښيناستو."

# دیارلسم باب

د کوئټې، شتر ګردن، ټل او د افریدو د غاړې په کابل د حملې سازشونه، په سرحداتو انګریزي فوځونه راجمع کېدل، افریدي ملکان په بډو او رشوتونو خان ته رااړول، د لارډ لیټن اخري خط د التي میټم په رنګ کښې، د امیر شیر علي خان زار روس ته د امداد خواست، د زار روس انکار، د امیر شیر علي خان د ذاتي فائدې په ځاے د افغانستان فائده مدنظر ساتل، د لارډ لیټن د شرائطو نه انکار.

د چیمبرلین مشن چې ختم شو نو لارډ لیټن په افغانستان باندې د حملې کولو دپاره یو عظیم الشان لښکر د راجمع کولو تیاري شروع کړې. د ټولو نه وړومبے هغهٔ سمدستي د کوئټې د مضبوطولو دپاره د ملتان نه څهٔ فوځونه اولیږل او د درهٔ بولان په لاره ئې په قندهار باندې د حملې کولو په غرض په ملتان باندې د یو لوے فوځ د راجمع کېدو فرمان جاري کړو. او وې لیکل چې دا فوځ دې په اول نومبر د افغانستان په مجوزه لام کښې د شاملېدو دپاره بالکل تیار اوسي ولې په افغانستان باندې د اصلي او لویې حملې کولو دپاره د هغهٔ سترګې جنرل رابرټس (لارډ رابرټس) او د لمسډن د مشورې مطابق د شتر ګردن په دره باندې لګېدلې وے. د هغهٔ دا یقین وهٔ چې د دې درې اخستو سره به انګریزي فوځونه په امیر صاحب او د هغهٔ په دارالسلطنت کابل باندې دا شان رعب واچوي چې هغوي به خپل حسب منشا په هغهٔ باندې خپل ټول شرطونه تسلیم کړي.

د دې نه اګاهو مونږ ذکر کړے دے چې هغهٔ د چیمبرلین د مشن راتلو نه ډېر وړومبے کمانډر انچیف ته حکم کړے وهٔ چې د فوځ یوه مضبوطه دسته دې په کوهاټ باندې د رایوځاے کېدو دپاره تیاره وساتلې شي چنانچه اوس په شلېریشتم ستمبر باندې هغهٔ حکم صادر کړو چې دا فوځ دې فوراً په ټل باندې رایوځاے شي. لارډ لیټن د فوځ د دې حصې سالاري میجر جنرل ایف ایس رابرټس ته ورکړه.

هر کله چې وائسراے د هندوستان په دې لویو لویو سرحدي مقاماتو یعنې په کوئټه او په ټل باندې دومره په لویه پیمانه باندې فوځي تیاری شروع کړې نو قدرتاً د سرحد په ټولو خودمختارو او ازادو قبائلو کښې یو قسم بې چیني او هیجان پیدا شو له دې کبله هغهٔ یو بل حکم دا جاري کړو چې فوځي تیاري سره دې سم د ازاد قبائلو د رضا کولو او حکومت انګریزي سره د هغوي ملګري کولو کار هم شروع شي. چنانچه په دې سلسله کښې یو طرف ته د بلوچستان فیرنګي ایجنټ ته خبر ورکړې شو چې عنقریب ډېر انګریزي فوځونه به د درهٔ بولان په لاره باندې د کوئټې په طرف در روانیږي له دې کبله تهٔ سمدستي خان قلات او د قلات او د کوئټې تر منځ ټولو قبائلو سره انګریزي فوځونو له د لارې ورکولو متعلق

خبرې اترې شروع کړه او بل خوا ته د کوهاټ ضلعي پوليټيکل افسرانو ته دا هدايات واستولې شول چې تاسو د درهٔ کرم ټولو قبائلو ته د حکومت انګريزي د طرف نه دا اطمينان ورکړئ چې ستاسو په علاقه کښې به د انګريزي فوځونو پيش قدمي بالکل دوستانه وي او ستاسو په خودمختارۍ کښې به د هيڅ قسم نقص نهٔ پيښيږي. د پيښور په علاقه کښې هم کمناري افريدو سره د دوستۍ د جوړولو په خاطر بيا جرګې راواخستې ولې چونکې د افريدو د رويې متعلق هيڅ څهٔ رائ جوړه نشوه قائمولې او دا ويره په فيرنګيانو کښې خوره شوې وه چې کهٔ چرې افريدو ، وزيرو او مومندو په يو ځل د يورش کولو دپاره ملا وتړله نو غالباً چې په ټول سرحد باندې به د انګريزانو برخلاف د جنګ يو عام اعلان وشي. له دې کبله د پيښور د حفاظت دپاره د هوتي مردان د ګائيډ فوځونه د جمرود په قلا کښې پاتې شول او د سکهانو يوه پلټن سره د توپخانې د کوهاټ نه پيښور ته نورو فوځونو سره شامليدو دپاره راغله.

چونکې کمناري د طبيعت نه سخت او تند خويه وهٔ له دې کبله هغهٔ ته د افريدو د قوم بيلې بيلې قبيلې او جدا جدا خيل سره خبرې کول او د هغوي ځان طرف ته رااړول يو ګران او وړد کار ښکاره شو چنانچه د لږې مودې د جرګې نه پس د هغهٔ زړهٔ تنګ شو او حوصله ئ ختمه شوه پس هغهٔ د يو داسې تجويز په تکل کښې شو چې په هغې هغه زر او په اسانه د هغوي په رااړولو کښې کامياب شي. چنانچه د ډير غور نه پس هغهٔ د اکتوبر په ابتدا کښې لارډ ليټن ته دا تجويز د منظورۍ دپاره پيش کړو چې چونکې پښتون قوم باندې د هرې وړومبۍ کاميابۍ او برې ډير اثر کيږي او هرکله چې يو فريق د جنګ په ابتدا کښې څهٔ ښکاره او نمايان فتح بيامومي نو بيا د پښتنو دا عام خوئ دے چې د څهٔ وخت دپاره د برې ملګري کيږي. په دې وجه پکار دي چې انګريزي فوځونه فوراً په علي مسجد باندې د شپې يو چپاؤ وکړي او په هغې قبضه وکړي. د هغهٔ په خيال د دې تجويز په کاميابۍ سره د سر کيدو نتيجه به دا وه چې نهٔ صرف افريدي به د امير صاحب د پرې نه د فيرنګيانو په طرف راواوړي بلکې په مومندو، وزيرو او نورو خودمختار قبائلو باندې به هم د انګريزانو ډير رعب پريوځي. چونکې لارډ ليټن پخپله هم د دې قسم فوځي نمائشونو ډير شوقين وهٔ او د خپل غرض او مقصد په حاصلولو کښې د هيڅ اصولو پابند نهٔ وهٔ له دې کبله د کمناري دا تجويز د هغهٔ په زړهٔ ولګيدو او سره د دې چې کمانډر انچيف او سر نيول چيمبرلين دواړه د دې تجويز مخالف وو ولې جنرل رابرټس د دې په تائيد کښې وهٔ په دې وجه هغهٔ دا تجويز منظور کړو او جنرل سي سي راس د پيښور کمان افسر ته ئ حکم وکړو چې تهٔ سره د فوځ د يوې دستې او د درې لويو توپو شپه په شپه د علي مسجد په طرف روانَ شه او نمر ختو سره په علي مسجد حمله وکړه. جنرل راس د دې ټول تجويز مخالفت وکړو او وې ليکل چې کهٔ چرې ماته حکم وشي نو زهٔ به ئ تعميل وکړم مګر زما په رائ کښې دا ټول تجويز کچه دے او د

دې کار سر ته د رسولو دپاره په پېښور کښې کافي فوځونه نشته. لارډ ليټن د راس د دې رائ هم هيڅ پروا ونۀ کړه او په دې تجويز باندې د سمدستي عمل کولو دپاره دوباره احکام جاري شول. مګر په دې منځکښې شملې ته خبر راورسيدو چې امير صاحب د پښتنو څلور پلټنې او څۀ توپې هم د علي مسجد د مضبوطولو دپاره راواستولې. او د پښتنو نور امدادي فوځونه هم د ډکې نه را روان دي په دې وجوهاتو لارډ ليټن مجبوراً خپل احکام واپس کړل.

لوستونکو له خيال ساتل پکار دي چې نۀ خو لا لارډ ليټن امير شير علي خان سره خپل سياسي تعلقات ښکاره پريکړي وو او نۀ لا هغۀ ته د انګريزي حکومت خيال ښکاره کړے وۀ او نۀ لا په هغۀ باندې د باقاعده جنګ اعلان کړے وۀ بلکې د هغۀ داارادہ وه چې لکه د يو شوکمار زۀ په علي مسجد باندې ډاکه ووهم او هغه قبضه کړم.

د دې کارونو نه پس لارډ ليټن د خپل فوځي مشيرانو د مشورې مطابق په پېښور کښې قريباً اووۀ زره او يو سل سپاهيان د پښتنو د دې فوځ په مقابله کښې راجمع کړل او شپږ زره نورو سپاهيانو ته ئې په لارنس پور باندې د رايوځاے کيدو حکم وکړو. د دې نه علاوه هغۀ نور ډير فوځونه څۀ په سکهر او څۀ په پېښور کښې د خيبر په لاره باندې په افغانستان د حملې کولو دپاره تيار وساتل. او په يوه عظيم الشانه پيمانه باندې ئې په افغانستان باندې د لام ترلو قصد وکړو.

دې خوا خو لارډ ليټن په درۀ بولان، په درۀ کرم او په درۀ خيبر باندې په افغانستان د پيش قدمۍ کولو دپاره فوځونه مرتب کړل او بل خوا د هغۀ قاصد غلام حسين خان د امير صاحب جواب ځان سره هندوستان ته راوړلو. د امير صاحب دا جواب د هغې خط متعلق وۀ چې کوم لارډ ليټن هغۀ ته د انګريزي مشن کابل ته د تلو متعلق ليکلے وۀ. د امير صاحب د جواب الفاظ چې په انګريزۍ کښې ترجمه شوي وو حسب ذيل دي:

"After compliments; your Excellency's despatch regarding the sending of a friendly message has been received through Nawab Ghulam Hussain Khan; I understand its purpose, but the Nawab had not yet an audience, nor had your Excellency's letter been seen by me when a communication was received to the address of my servant Mirza Habibullah Khan, from Commissioner, Peshawar, and was read. I am astonished and dismayed by this letter, written threateningly to a well- intentioned friend, replete with contensions, and yet nominally regarding a friendly mission. Comming thus by force, what result, or profit, or fruit could come of it? Following this three other letters from above mentioned source, in the very same strain, addressed to my officials have been pursued by me. Thus, during a period of a few days, several letters from that quarter have all been before me, and none of them have been free from harsh expression and hard words, repugnant to courtesy and politeness, and in tone contrary to the ways of friendship and intercourse. Looking to the fact that I am at this time assaulted by affliction and

grief at the hand of fate, and that great trouble has possessed my soul, in the officials of the British Govt;. Patience and silence would have been specially becomming. Let our excellency take into consideration this harsh and breathless haste with which the desire object and place of Conference have been seized upon, and how official of the govt; have been led in discussion and subjection to reproach. There is some difference between this and the pure road of friendship and good-well. In alluding to those writing of the officials of the opposite govt; which have emanated from them, and are at this time in the possession of my own officials, the later have in no respect desired to show enmity or opposition towards the British govt; nor, indeed, do they with any other power desire enmity or strife, but when any other power, without cause of reason shows animosity towards this govt; the matter is left in the hands of God and to his will. ".

***(Afghanistan No.1.1878. Page 252-253)***

ترجمه : "د سلام نه پس، د والا شان تحریر د یو دوستانه پیغام د راستولو په باره کښې د نواب غلام حسین خان په لاس راورسیدو او زهٔ په مدعا پوهه شوم. مګر نواب موصوف لا ما سره ملاقات نهٔ وهٔ کړے او نهٔ د والا شان خط لا ما لیدلے وهٔ چې د پیښور د کمشنر د طرف نه یو تحریر زما د نوکر مرزا حبیب الله خان په نوم راغلو او هغه ما ولوستو. د دې خط په لوستو زهٔ سخت حیران او پریشان شوم چې یو نیک دوست ته په داسې قهرژنو الفاظو کښې ولې خطاب کیږي او ولې دا خط د هر قسم سختو الفاظو نه ډک دے حالانکې هغه برائ نام د یو دوستانه مشن متعلق لیکلے شوے دے. په دې طریقه په زور راتلو نه به څهٔ نتیجه خیژي یا د هغې نه به څهٔ فائده وي؟ د دې نه پس نور درې خطونه هم د کمشنر پیښور د طرف نه په دې پیرایه کښې زما د نوکرو افسرانو په نوم راورسیدل او ما ولوستل. دغه شان په یو څو ورځو کښې ډیرې چیټې د دغې خوا نه زما په مخکښې راغلې چې یوه هم داسې نهٔ وه چې د خوش خلقۍ او د خوش مذاقۍ نه خلاف او د دوستۍ د لارې او تعلقاتو نه متضاد نهٔ وے. د دې خبرې مدنظر چې دا وخت د نصیب د لاسه په ما یو ډیر لوے غم او اندوه حمله کړې ده او زما په ځان یو لوے مصیبت راپریوتے دے نو د حکومت برطانیه افسرانو دپاره به صبر او خاموشي اختیارول زیات مناسب وي. والا شان خو دې په دې غور وکړي چې په څومره سختۍ او ساه نیولې جلدۍ باندې د کانفرنس مقام او د هغې مدعا خوښه کړې شوې ده او په کوم رنګ د دې حکومت افسرانو سره خبرې اترې شوې دي. او د هغوي سپکاوے شوے دے. په دې طریقه او د دوستۍ او د نیک نیتۍ په صفا لاره کښې فرق ضرور شته. د حکومت بالمقابل سرکاري ملازمانو چې کوم تحریرونه لیکلي دي د هغې بابت زهٔ دا وایم چې هغوي د هیڅ قسم دشمني یا مخالفت د حکومت برطانیه برخلاف نهٔ دے ښکاره کړے او نهٔ در حقیقت هغوي بل حکومت سره دشمني کول غواړي. مګر هر کله چې یو بل حکومت بغیر د وجې او

سبب نه دې حکومت سره دشمني کول غواړي نو دا معامله مونږ د خدای پاک په لاس کښې او د هغهٔ منشا ته پرېږدو."

په کومه طريقه چې لارډ ليټن خپل مشن کابل ته استول غوښتل او په کومو الفاظو کښې چې هغهٔ امير شير علي خان او د هغهٔ افسرانو ته د دې مشن د راتلو خبر ورکړے وهٔ د هغې د مطالعې نه پس به داسې يو منصف مزاج بنيادم هم نهٔ وي چې هغه د امير صاحب د دې برنې چيټې د هر ټکي په صداقت قائل نهٔ شي. د يو خودمختار او ازاد ملک فرمانروا ته د هغهٔ د افسرانو په ذريعه دا ليکل چې کهٔ چرې څوک د مشن په لاره کښې مزاحم شو نو دا به د امير صاحب د طرف نه د دشمنۍ فعل ګڼلے شي، څومره سخت او د سپکاوي الفاظ دي. بيا د وائسرائے، چيمبرلين ته دا ليکل چې خواه امير ستا د تلو اجازت کړے وي او کهٔ نه خو تهٔ په شپاړسم ستمبر د کابل په طرف روان شه. غرض دا چې د امير شير علي خان د دې جواب په ليکلو کښې نهٔ خو د حکومت برطانيه بې عزتي کول مراد وو او نهٔ هغوي سره څهٔ ګستاخي کول غرض وو ولې باوجود د دې لارډ ليټن وزير هند ته په نولسم اکتوبر تار ورکړو چې د پنجاب د لفټيننټ ګورنر او د سر نيول چيمبرلين او د مسټر ايلفرډ لائل دا رائ ده چې امير صاحب قصداً او اردتاً دا جواب په ډيره ګستاخانه لهجه کښې ليکلے دے. او هم په دې تار کښې لارډ ليټن د وزير هند نه دا اجازت وغوښتو چې حکومت هند ته دې په درهٔ کرم او په درهٔ پشين باندې د سمدستي حملې کولو اجازت ورکړې شي. او کهٔ چرې حکومت هند دا ضروري وګڼي چې په قندهار دې هم پيشقدمي وشي نو چې د دې هم هغوي ته اختيار ورکړې شي.

په دې طريقه لارډ ليټن لکه د هغه زړې قصې د شرمخ په شان امير صاحب ته اوبهٔ خړول غوښتل چې په څهٔ شان هغه په خپلو زړو منصوبو کښې يعنې په شتر ګردن او په درهٔ بولان باندې قبضه کولو کښې کامياب شي. د لارډ ليټن د دې تار په جواب کښې حکومت انګلستان هغهٔ ته دا وليکل چې په " افغانستان باندې د حملې کولو نه اګاهو دې يوه چيټۍ امير شير علي خان ته وليکلې شي او په هغې کښې دې د هغهٔ نه په دې وجه د معافۍ غوښتلو مطالبه وشي چې فيض محمد خان انګريزي مشن ته په خيبر کښې د تيريدو نه ولې انکار کړے دے." وګورئ د انګلستان د حکومت دې انصاف ته چې د يو دومره بهادر او غيرتي قوم د مشر نه صرف په دې سبب د معافۍ د غوښتلو مطالبه وشوه چې ستا يو ماتحت افسر دومره جرأت ولې وکړو چې هغهٔ د خپلو فرائضو په ادائيګۍ کښې انګريزي مشن ته په افغانستان کښې په زور د راننوتو نه منع کړو. مګر د کوم قوم مشران چې د کمزورۍ بې اتفاقۍ او د خودغرضۍ غوندې نامراد مرضونو کښې مبتلا وي هغوي هم دغه شان د سزا لائق وي. د حکومت انګلستان د دې حکم په تعميل کښې لارډ ليټن چې کومه چيټۍ د وزير هند په

منظوری شیر علي خان ته واستوله هغه مونږ لاندې درج کوو. لوستونکو له د هغې په گستاخانه او د سپکاوي او د بې عزتی په لب و لهجه غور پکار دے:

" I have received and read the letter which you have sent me by the hands of my Sirdar. It will be in your recollection that immediately on my arrival in India I proposed to send you a friendly mission for the purpose of assuring you of the good-well of the British govt; and of removing those past misunderstandings to which you have frequently alluded.

After leaving this proposal long unanswered, you rejected it, on the grounds that you could not answer for the safety of any European Envoy in your country, and that the reception of a British mission might afford Russia a pretext for forcing you to receive a Russian Mission. Such refusal to receive a friendly mission was contrary to the practice of allied states, yet the British govt; unwilling to embarrass you accepted your excuses.

Nevertheless you have now received a Russian Envoy at your capital, at a time when a war was believed to be imminent in which England and Russia would have been arrayed on opposite sides, thereby not only acting in contradiction to the reasons asserted by you for not receiving a British Mission, but giving to your conduct the appearance of being actuated by motives inimical to the British Govt;.

In these circumstance, the British Govt; remembering its former friendship with your father, and still desiring to maintain with you amicable relation, determined to send, after such delay as the domestic afflection you had suffered rendered fitting, a mission to you under the charge of Sir Neville Chamberlain, trusted and distinguished officer of the Govt; who is personally known to you; the escort attached to his mission, not exceeding two hundred men, was much less numerous than that which accompanied you into British Territory, and was not more than was necessary for the dignity of my Envoy. Such missions are customary between friendly neighbouring states, and are never refused accept when hostility is intended.

I despatched by a trusted messenger a letter informing you that the mission accredited to you was of a friendly character; that its business was urgent, and that it must proceed without delay.

Nevertheless you, having received my letter, did not hesitate to instruct your authorities on the frontier to repel the mission by force. For this act of enmity and indignity to the Empress of India in the person of her Envoy, your letter affords no explanation or apology, nor does it contain any answer to my proposal for a full and frank understanding between our two governments.

In consequence of this hostile action on your part, I have assembled her majesty forces on your frontier and I desire to give you a last opportunity of averting the calamities of war.

For this it is necessary that a full and suitable apology be offered by you in

writing, and tendered on British territory by an officer of sufficient rank.

Further more, as it has been found impossible to maintain satisfactory relations between the two states unless the British Govt is adequately represented in Afghanistan, it will be necessary that you should consent to receive a permanent British mission within your territory.

It is further essential that you should undertake that no injury shall be done by you to the tribes who acted as guides to my mission, and that reparation should be made for any damage they have suffered from you; and if any injury be done by you to them, the British Govt will at once take steps to protect them.

Unless these conditions are accepted, fully and plainly, by you, and your acceptance received by me not latter than the 20th November, I shall be compelled to considered your intentions as hostile, and to treat you as a declared enemy of the British Govt.

*(Afghanistan No.1-1878 Pages 254,255)*

ترجمه : "کوم خط چې تا ماته زما د سردار په لاس راستولے دے هغه ماته راورسیدو او ما ولوستو. تاته به دا یاد وي چې څۀ وخت زۀ هندوستان ته راورسیدم نو د هغې نه لږې ورځې پس ما تا ته د یو دوستانه مشن د درلیږلو تجویز پیش کړو. د دې غرض دپاره چې تاته د حکومت برطانیه د نیک نیتۍ اعتبار درکړي. او هغه زړې غلط فهمی ستا د زړۀ نه لرې کړي چې کومې وقتاً فوقتاً تا یادې کړي دي.

د ډیرې مودې د خاموشۍ نه پس اخر تا دا تجویز په دې بنا باندې نامنظور کړو چې زۀ به خپل ملک کښې د یو یورپین سفیر د سلامتۍ ذمه واري په سر نشم اخستے. او بله دا چې کۀ چرې زۀ انګریزي مشن راپریږدم نو روس له به هم د یو روسي مشن په زور د راستولو بهانه په لاس ورشي. د دې قسم دوستانه مشن ته د راتلو اجازت نۀ ورکول د دوؤ دوستانو حکومتونو د قاعدې نه خلاف ده مګر بیا هم چونکې حکومت برطانیه تۀ پریشان کولې نه له دې کبله هغوي ستا عذر منظور کړو.

سره د دې اوس تا یو روسي سفیر په خپل دارالسلطنت کښې راتلو ته پریښودو او په یو داسې وخت کښې دې راپریښودو چې د انګریزانو او د روس په منځکښې جنګ کیدل بالکل اغلب وو او دغه شان د هغې ټولو وجوهاتو برخلاف وچلیدې چې تا د انګریزي مشن د نۀ پریښودو په حقله پیش کړي وو. بلکې تا خپل طرز عمل ته دا شان جامه ور واغوستوله لکه چې تا دا کار د حکومت برطانیه د دشمنۍ په سبب کړي وي.

په دې حالاتو کښې حکومت برطانیه پیش نظر د هغې زړې دوستۍ چې کومه د هغوي او ستا د پلار تر منځ راغلې وه او چونکې اوس هم هغوي تا سره دوستانه تعلقات ساتل غواړي له دې کبله هغوي دا فیصله وکړه چې مونږ د هغې کورني غم نه مناسب وخت پس چې کوم په تا باندې راغلے وۀ یو مشن د سر نیول چیمبرلین د مشرۍ د لاندې چې د دې

حکومت یو اعتباري او نامتو افسر دے او ستا ذاتي واقف دے تاته درولیږلو، کومو فوځي محافظه چې د هغهٔ مشن سره وه او د دوه سوه کسانو نه زیاتي نهٔ وو نو هغه د هغې دستي نه ډیره کمه وه چې کومه تا سره انګریزي علاقې ته راغلې وه او په هیڅ حالت کښې هم د دې نه زیاتي نهٔ وه څومره چې زما د سفیر د وقار ساتلو دپاره ضروري وه. دا قسم مشنونه په دوستانو ګاونډي حکومتونو کښې یو تر بله همیش استولے شي. او تر څو پورې چې دشمني کول مناسب نهٔ وي تر هغې پورې د هغې د قبلولو نه څوک انکار نهٔ کوي.

ما د خپل اعتباري قاصد په لاس، یو خط درولیږلو چې کوم مشن زهٔ تاته درلیږم هغه دوستانه مشن دے او کوم کارچې هغوي ته سپارلے شوے دے هغه ډیر ضروري دے له دې کبله پکار دي چې هغه بې تکلیفه وړاندې پریښودې شي. سره د دې چې تاته زما خط دررورسیدو مګر تا بلا تامله د خپل سرحد افسرانو ته هدایات ورکړل چې مشن په زور منع کړئ تا په دې خط کښې د دشمنئ د دې فعل او د هغې بې عزتئ چې کومه تا د هندوستان د ملکې د هغې د سفیر په شخصیت کښې کړې‌ده هیڅ قسم جواب او معافي غوښتل نشته. او نهٔ په هغې کښې زما د دې تجویز څهٔ جواب شته چې زمونږ د دې دواړو حکومتونو په منځکښې مکمله او صفا سمجهوته پکار ده.

تا د دې دشمنئ د دې فعل په سبب ما د ملکې معظمې فوځونه ستا په سرحد باندې رایوځاے کړي دي مګر زما دا خواهش دے چې د جنګ د مصیبتونو نه د خلاصیدو یوه اخري موقع زهٔ تا ته درکوم. د دې غرض دپاره دا ضروري ده چې تهٔ یوه پوره او مناسبه معافي په تحریر کښې وغواړې او انګریزي علاقې ته ئې د خپل د یوې لویې عهدې د افسر په لاس راواستوے. د دې نه علاوه چونکې دا ثابته شوې ده چې زمونږ د دواړو حکومتونو په منځکښې تسلي بخش تعلقات نشي پاتې کیدے تر څو پورې چې د حکومت برطانیه یو نمائنده افغانستان کښې موجود نهٔ وي له دې کبله دا ضروري.ده چې تهٔ په خپل ملک کښې یو مستقل انګریزي مشن په قائمیدلو باندې رضامندي ظاهره کړې.

د دې نه علاوه دا هم ډیره ضروري ده چې تهٔ د دې ذمه واري واخلې چې تهٔ به هغې قومونو ته د هیڅ قسم نقصان نهٔ رسوې چې چا زما د مشن رهبري کړې ده. او کوم نقصان چې ستا د لاس نه هغوي ته رسیدلے دے تهٔ به د هغې معاوضه (عوضانه) هغوي ته ورکوے. او کهٔ چرې تا هغوي ته نقصان ورسولو.نو حکومت برطانیه به سمدستي د هغوي د حفاظت دپاره کارروائي کوي.

تر څو پورې چې تهٔ دا شرطونه پوره پوره او په صفا الفاظو کښې تسلیم نهٔ کړې او دا تسلیمول تر شلم نومبر پورې را وانهٔستوے نو زهٔ به مجبور یم چې دا خیال وکړم چې ستا نیت د دشمنئ دے او زهٔ به بیا تا د حکومت برطانیه ښکاره دشمن ګڼم."

د لارډ ليټن مذكوره الټمي ميټم چې د كومو غلط بيانو او د خلاف حقيقت خبرو نه ډک دے په هغې باندې مونږ د دې نه اګاهو هم مفصل بحث كړے دے. مګر د لوستونكو د ياد تازه كولو دپاره مونږ يو ځل بيا مختصر طور په هغې نام نهاد الزامونو يو سرسري نظر زغلوؤ چې كوم وائسرا‌ے په امير شير علي خان باندې لګولي دي.

لوستونكو ته به ياد وي چې د كوم دوستانه مشن ذكر لارډ ليټن د دې الټمي ميټم په وړومبي فقره كښې كړے دے د هغې بابت كښې اول اول خو هغۀ د شير علي خان نه د هغې مشن د اصلي مقصد او د مدعا د پټولو انتهائي كوشش وكړو او هغۀ ته ئې وليكل چې دا مشن كابل ته صرف د دوؤ خبرو اطلاع دركولو دپاره دراستولے شي اول دا چې هغوي د ملكۀ معظمه د نوي لقب د اختيارولو نه تاسو خبر كړي او بل دا چې تاسو ته د نوي وائسرا‌ے د آمد باقاعده اطلاع دركړي. لارډ ليټن په دې سبب د امير صاحب نه د مشن اصلي مدعا پټوله. چې هغۀ ته دا معلومه وه چې كوم مطالبات به بالاخر دا مشن د امير صاحب نه كوي د هغې منلو ته امير صاحب هيچرې هم نۀ تيياريږي نو كۀ چرې هغۀ د اوس نه د مشن د تلو په مدعا پوهه شي نو هغه به ضرور د مشن د راپريښودو نه انكار وكړي. ولې هركله چې وائسرا‌ے امير صاحب له د دوكې په وركولو كښې كامياب نشو نو لارډ ليټن هغۀ ته دوباره دا وليكل چې د مشن د درتلو غرض دا دے چې امير صاحب ته د حكومت برطانيه په مخكښې د خپلو خواهشاتو د پيش كولو مكمله موقع په لاس ورشي. او ورسره ئې د عطا محمد خان وكيل په ذريعه او په خپله شير علي خان ته هم دا قسم د هتک په لفظونو او د دباؤ نه ډک تحريرونو كښې د حكومت هند د مطالباتو د منظوررولو متعلق وليكل چې امير شير علي خان په ډير هنر او خوش خلقي سره د دې قسم مشن د قبلولو نه انكار وكړو او سيد نور محمد شاه خپل وزير اعظم ئې پيښور ته د دې غرض دپاره راوليږلو چې هغه حكومت هند په دې په ښۀ شان سره پوهه كړي چې د دې مطالباتو په منظوررولو كښې نۀ صرف شير علي خان ته بلكې حكومت برطانيه ته هم خطره ده. دا شرطونه اومطالبات چې كوم شير علي خان نه د دې مشن په ذريعه تسليمول منظور وو هغه لوستونكو.ته معلوم دي د هغې يو لو‌ے او اهم شرط دا وۀ چې حكومت هند به په افغانستان كښې په ټولو سرحدي مقاماتو انګريزي افسران په طور د ايجنټانو مقرروي او هغوي به وقتاً فوقتاً په خپل دوستانه نصيحتونو باندې د امير صاحب جائزه توجه راكاږي هركله چې د طول طويل مباحثې نه پس بيا هم سيد نور محمد شاه دې ته مائل نشو چې مشن دې كابل ته راشي او بيا لارډ ليټن سيوا د 1855ء د عهدنامې نه خپلې نورې وعدې او اقرارونه ټول مسترد كړل او امير شير علي خان له ئې په قندهار او هرات باندې د پيشقدمۍ دهمكي وركړه او د دې نه علاوه ئې هغۀ سره ټول سياسي تعلقات وشلول. د روسي مشن د راتلو متعلق حكومت هند ته د خپلو مخبرانو او ايجنټانو ته د خلقو نه په ښۀ

شان معلومه شوې وه چې روسيان کابل ته د شير علي خان د مرضى نه خلاف راغلي دي او هغه د هغوي په لاره کښې هر ممکن رکاوټونه پيدا کوي. دا هم حکومت هند ته ښه معلومه وه چې امير صاحب ستولیتاف او د هغهٔ ملګري کابل ته د رارسيدو نه بس بالکل د قيديانو په شان نظر بند ساتلي وو په کومه طريقه چې حکومت هند د امير شير علي خان د زوي د مرګ په ورځو کښې په هغهٔ باندې د خپل مشن د قبلولو بابت کښې جلدي کوله هغه هم هر چاته معلومه ده مګر سره د دې صفا او ناقابل ترديد واقعاتو لارډ ليټن په دې التمې ميتهم کښې واقعات په دا شان غلطه طريقه ښکاره کړي دي چې الزامونه ئ ټول د شير علي خان په سر تپلي دي. د لارډ ليټن دا وينا چې د افغانستان او حکومت برطانيه تعلقات د هغه پورې تسلي بخش نشي پاتې کيدے تر څو چې يو انګريزي سفير په افغانستان کښې مستقل طور مقيم نشي بالکل غلطه ده ځکه چې دا تعلقات د دواړو حکومتونو په منځکښې د امير دوست محمد خان د زمانې نه تر دې وخته پورې بغير د انګريزي سفير د موجودګۍ نه ډير خوشګوار پاتې شوي وو البته دا به نهٔ وهٔ چې د کابل فرمانروا هم د هندوستان د راجګانو اونوابانو په شان د انګريزانو يو غلام وے لکه چې څرنګ د لارډ ليټن منشا وه او دا تعلقات د هغې وخت نه په دواړو حکومتونو کښې کشيده شول چې څهٔ وخت لارډ ليټن په زور او په دباؤونو په امير شير علي خان باندې د انګريزي افسرانو په افغانستان کښې وسيدل غوښتل.

کومه رائ چې د لارډ ليټن د دې ټولې کارروايۍ متعلق بره بيان شوې ده د هغې ډير ملګري په هغه زمانه کښې هم د انګلستان په لويو لويو سياستدانانو کښې موجود وو چنانچه زوړ لارډ لارنس، لارډ ګرے او لارډ نارتهـ بروک زباني او په تحرير کښې هم دا قسم رائ ظاهره کړې وه چې امير شيرعلي خان د دې مشن په نهٔ قبلولو کښې د زړو اقرارونو او وعدو په بنا باندې بالکل حق بجانب دے. چنانچه دې کسانو په شپاړسم نومبر د لارډ لارنس په صدارت کښې يوه کميټي جوړه کړه او لارډ بيکنز فيلډ ته ئ د دې کميټۍ د طرف نه د يو وفد د ليږلو درخواست وکړو. چې هغوي په دې ټوله معامله باندې هغهٔ ته د خپلو خيالاتو اظهار وکړي. د دې وفد اصلي غرض دا وهٔ چې د هندوستان وائسرائے دې د تار په ذريعه د جنګ د شروع کولو نه منع کړې شي او د افغانستان او د وسط ايشيا متعلق ټول سرکاري کاغذات دې شائع کړې شي. او پارليمنټ دې سمدستي راوغوښتې شي مګر وزير اعظم دې وفد سره د ملاقات کولو نه انکار وکړو او نهٔ ئ دا کاغذات شائع کړل. تر څو چې د افغانستان لام شروع شوے نهٔ وهٔ.

په دې اثنا کښې امير شير علي خان ډير ضروري خطونه زار روس ته وليکل چې تهٔ زما او د حکومت برطانيه په منځکښې څهٔ فيصله وکړه چې جنګ ته نوبت ونهٔ رسي مګر زار هغهٔ ته دا جواب ورکړو چې اګر چې زهٔ ستا او د فيرنګيانو په منځکښې د صلح انتهائي وس

کوم مګر تا له انګريزانو سره صلح کول پکار دي.

د تنګسيا او د مصيبت په وخت کښې امير صاحب بيا زار ته وليکل چې د انګريزانو او د زار تر منځ دا ناچاقي ټوله هم ستاسو په وجه ده. او چونکې فيرنګيان بيشماره فوځونه زما په سرحد راجمع کوي د دې کبله زار له پکار دي چې هغه ما سره دوستانه امداد وکړي د دې خط په جواب کښې زار هغهٔ ته وليکل چې په موجوده حالاتو کښې زهٔ امير صاحب سره هيڅ فوځي امداد نشم کولے نو بهتره به دا وي چې امير صاحب فيرنګيانو سره څهٔ نا څهٔ روغه وکړي او في الحال دې د هغوي شرطونه په ځان باندې تسليم کړي.

ولې د امير شير علي خان مقصد فيرنګيانو سره په دې دومره کشمکش کولو کښې د افغانستان ازادي برقرار ساتل وو نه چې د خپل ذات د فائدې دپاره د انګريزانو د سيوري لاندې په افغانستان باندې حکومت کول وو. هغهٔ ته دا معلومه وه چې په دې ټوله معامله کښې حق و انصاف د هغهٔ په طرف دي نه چې د انګريزانو په طرف. نهٔ خو هغهٔ خپل ځان دا شان قصور وار ګڼلو چې هغه دې اوس په ذلت او په سپکاوي د فيرنګيانو نه د خپل ملک او قوم د ازادۍ محفوظ ساتلو د ګناه په بدل کښې معافي وغواړي. هغه په دې نتيجه رسيدلے وهٔ چې لارډ ليټن به ما باندې د خپلو زړو شرطونو د قبلولو دپاره هسې بهانې لټوي. (چنانچه لارډ ليټن د خپل الټي ميټم په فقره نمبر 9 کښې دا اصلي مدعا شير علي خان ته ښکاره کړې ده او کومې اوبهٔ چې هغهٔ تراوسه پورې د بوسو لاندې بوتلې هغه ئې په دې فقره کښې هغهٔ ته ښکاره کړي دي) او چونکې د دې شرطونو په منلو کښې افغانستان نه ازادي بالکل ځي هغه د هغې منلو ته بالکل تيار نهٔ وهٔ پس هغهٔ ته په مخکښې يو طرف ته خپل ځان او بل طرف ته د افغانستان ازادي پرته وه. او په دې دواړو کښې هغهٔ د افغانستان ازادۍ له په ځان ترجيح ورکړه. هغه په دې ډير ښهٔ پوهه وهٔ چې زهٔ د انګريزانو د فوځونو مقابله په ميدان کښې نشم کولے او کهٔ نوبت جنګ ته ورسيدو نو هم زهٔ به شکست خورم. ولې د افغانستان ازادي او د پښتنو عزت او وقار هغهٔ ته د خپل ځان نه ګران وهٔ له دې کبله دې بهادر او غيرتي محب وطن پښتون خپل ځان خپل بال بچ او خپل ټول مال و دولت پخپل ملک او قام باندې د قربانولو فيصله وکړه او ځان ئې د خدائے پاک اسرې ته وسپارلو او د لارډ ليټن د الټي ميټم ئې هيڅ جواب ور نهٔ کړو.

# څوارلسم باب

**د خیبر، شتر ګردن او بولان د غاړې په افغانستان د حملې تیاری، د ملتان نه بیشماره فوځ کوئټې ته تلل، په یویشتم نومبر 1878ء د افغانستان دویم جنګ شروع کیدل. د حملې نه وړاندې د لارډ لیټن د افغانستان د خلقو په نوم یو فرمان.**

د چیمبرلین د مشن خوریدو سره سم لارډ لیټن حکم وکړو چې په دریو بیلو بیلو محاذونو او لارو باندې دې انګریزي فوځونه په افغانستان باندې د حملې کولو دپاره تیار اوسي. د دې حملې دپاره یو د درۀ خیبر بله د درۀ کرم او شترګردن او دریمه د درۀ بولان او خوجک کوتل لارې مقرر شوې وې. او د دې هر یو محاذ دپاره جدا جدا فوځونه د جدا جدا سالارانو په ماتحتۍ کښې تیار شوي وو. اګاهو د دې نه چې دا بیل بیل فوځ خپل خپل محاذ ته روان شوے وے لارډ لیټن د کوئټې د استحکام دپاره د ملتان نه د فوځ یوه مضبوطه دسته چې په هغې کښې شپږ زره سپاهیان او اتلس توپې وې د میجر میکائیل اے ایس بیډوف د سالارۍ لاندې په پنځویشتم ستمبر د دې دپاره واستوله چې د بلوچستان د علاقې په قبائلو باندې د انګریزانو دومره رعب او اثر پیدا شي چې هغوي ته په کوئټه باندې د حملې کولو جرأت ونشي میجر جنرل بډولف سره د خپلو فوځونو د یو سخت تکلیف ده سفر نه پس په نهم نومبر کوئټې ته راورسیدو او سمدستي ئې د کوئټې د استحکاماتو مضبوطول شروع کړل. کۀ چرې امیر شیر علي خان د لارډ لیټن د مجوزه حملې د تدارک او بچاؤ دپاره دا وخت د قندهار فوځونو ته په کوئټه باندې د قبضې کولو حکم کړے وے نو هغوي به په ډیرې اسانتیا په درۀ پشین او په کوئټه باندې قبضه کړې وه او دغه شان به د جنګ په ابتدا کښې امیر صاحب له نۀ صرف د فیرنګیانو یو اهم فوځي مرکز په لاس ورغلے وۀ بلکې د بلوچو او د هغې طرف د پښتنو ټول قبائل به هم هغۀ سره ملګري شوي وو او د انګریزانو دپاره به په قندهار باندې د ورختو لار هم بنده شوې وه. د بډولف د دې فوځ د رارسیدلو نه وړومبے امیر صاحب د قندهار د فوځونو د کومک دپاره درې رسالې، درې پلټنې او شپږ توپې د هرات نه استولے وے او د هغۀ سپه سالار صفدر علي خان دا خواهش لرلو چې زۀ په دې فوځ باندې په درۀ پشین باندې او په کوئټه باندې پیشقدمي وکړم ولې دا تجویز هم امیر صاحب منظور نۀ کړو. په دیارلسم نومبر بډولف ته د حکومت هند حکم راغلو چې تۀ خپل فوځ په قندهار باندې د پیشقدمۍ دپاره تیار وساته اګر چې د هغۀ د فوځ یوه لویه حصه د سفر د ستومانۍ، د بیمارۍ او د لوږو تندو په سبب په لاره باندې تباه شوې وه او په کوئټه کښې هم د هغوي حالت د وړومبے نه څۀ ښۀ شوے نۀ وۀ. نۀ خو د فوځ دپاره غله موجوده وه او نۀ د څناورو

دپاره ګیاه پیدا کیده او دې سره بیشانه ډیر خلق په هسپتالونو کښې ناروغه پراته وو ولې بدولف شپه او ورځ د دې حکم په تعمیل کښې په ځان یوه کړې وه او د فوځ د پیشقدمۍ دپاره ئې پوره تیاري وکړه. په نولسم نومبر ماښام هغۀ ته تار راغلو چې خپل ټول فوځونه د افغانستان په سرحد باندې راجمع کړه. چنانچه په شلم تاریخ دا فوځونه د کوئټې نه روان شول او په یویشتم باندې په افغانستان کښې د ورانډې کیدو دپاره په سرحد باندې رایوځاے شول.

لوستونکو ته به یاد وي چې لارډ لیټن په خپل الټي میټم کښې شیر علي خان ته شلم نومبر د جواب دپاره اخري تاریخ مقرر کړے وۀ. د بدولف د فوځونو روانیدو سره سم په ملتان باندې د یو بل فوځ د راجمع کیدو تیارۍ رواني وې چې دوئ هم په قندهار باندې پیشقدمي وکړي. په دې فوځ کښې دوه سوه افسران شپږ زره شپږ سوه سپاهیان یو زر اتۀ سوه سوارۀ او دوه څلویښت توپې وے. د دې جنګي سپاهیانو نه علاوه دوئ سره هم دومره مزدوران روان شو. د دې فوځ سالاري سرډانلډ سټورټ لفټیننټ جنرل ته ورکړې شوه. په اوولسم نومبر جنرل سټورټ د ملتان نه سکهر ته او په شلم نومبر شکارپور ته ورسیدو. د شکارپور نه په ډیر تکلیف او مصیبت کښې د هغۀ فوځونه روان شول ولې هغه پخپله سره د یو څو افسرانو د جنګ د شروع کیدو نه ډیرې ورځې پس د خپل فوځ نه مخکښې کوئټې ته ورسیدو. لکه څرنګ چې په قندهار باندې د پیشقدمۍ دپاره په ملتان باندې فوځونه تیاریدل دغه شان په شترګردن او د کرم په دره باندې د ورانډې کیدو دپاره هم فوځونه تیار شوي وو. په دې فوځ کښې یو نیم سل افسران پینځۀ زره پنځۀ شوه سپاهیان ، نهۀ نیم سوه اسونه او لس توپې وے. او سالاري ئې میجر ایف ایس رابرټس ته ورکړې شوې وه. رابرټس په نهم اکتوبر کوهاټ ته راورسیدو او د یوویشتم نومبر د حملې دپاره ئې د فوځ په تیارولو کښې شپه او ورځ په ځان یو کړل. د دې فوځ نوم کرم فیلډ فورس وۀ.

یو دریم فوځ چې د هغې نوم پشاور ویلي فورس وۀ د درۀ خیبر په لاره په افغانستان کښې د ننوتو دپاره هم تیاریدلو. د دې فوځ دوه حصې وے یوې حصې ته خو دا کار حواله شوے وۀ چې هغه به په ډکې قبضه کوي او بله به د هغوي د آمدورفت د لارې حفاظت کوي. د وړومبۍ حصې سالار سر سمویل براؤن اود بلې حصې سالار لفټیننټ جنرل ایف ایف ماډ مقرر شو. د جنرل ماډ په فوځ کښې شپږ زره څوانان او اتلس توپې وے او د لارنس پور نه په نوښار باندې رایوځاے شول. د جنرل براؤن په فوځ کښې دوه سوه افسران، اووۀ زره شپږ سوه سپاهیان دیارلس سوه اسونه او شپږ ویشت توپې وے.

په شلم نومبر د جنرل ماډ فوځ لا په نوښار کښې وۀ چې د جنرل براؤن ټوله عمله سره د فوځونو په دري بجې د ورځې په جمرود راجمع شول او دغه شان د لارډ لیټن د

احکامو مطابق درې لوے لوے انګریزي فوځونه په دریو بیلو بیلو محاذونو باندې په افغانستان باندې د حملې کولو دپاره په شلم نومبر تیار ولاړ وو. چونکې تر شلم نومبر امیر صاحب د لارډ لیټن د الټي میټم هیڅ جواب ور نهٔ کړو په دې وجه جنرل براؤن ، جنرل رابرټس او جنرل بډولف ته د وړاندې کیدو حکم وشو. د پیشقدمۍ نه وړومبے دې دریو واړو جرنیلانو د حکومت هند د هدایاتو مطابق د وائسرائے د طرف نه یو وړد اعلان شائع کړو چې په هغې کښې د جنګ ټوله ذمه داري وائسرائے په امیر صاحب غورځولې وه او چې چرته فضول او بې بنیاده الزامونه وو هغه ئې په شیر علي خان لګولي وو. او بیا ئې عام پښتنو او سردارانو ته په هغې کښې تسلي ورکړې وه چې د حکومت هند جګړه صرف شیر علي خان سره ده، نه چې د افغانستان خلقو سره. او دا چې چونکې د افغانستان د اولس خلقو حکومت برطانیه ته هیڅ نقصان نهٔ دے رسولے په دې وجه به هغوي ته د انګریزي فوځ د لاسه په اسانه هیڅ نقصان نهٔ رسیږي. د اعلان د دې اخري حصې نه د لارډ لیټن دا مدعا وه چې په دې چل به زهٔ د پښتون قوم همدردي د شیر علي خان نه واړومه حالانکې شیر علي خان د دې ټول جنګ بوج صرف د پښتون قوم د ازادۍ برقرار ساتلو دپاره په سر وچت کړے وهٔ. د لارډ لیټن دا خیال وهٔ چې پښتانهٔ خو یو ساده او بې علمه قوم دے نو کهٔ چرې زهٔ ورته د شیر علي خان د ذات برخلاف بد ووایم نو هغوي به دا جنګ د پښتون قوم برخلاف نهٔ ګڼي. بلکې صرف د شیر علي خان برخلاف به ئې ګڼي. او دغه شان به هغوي د انګریزي فوځ د مقابلې خیال پریږدي. او زهٔ به په ډیره اسانتیا په افغانستان قبضه وکړم. مګر راتلونکو واقعاتو د هغهٔ دا خیال بالکل غلط ثابت کړو. د پښتنو ټول قام د لارډ لیټن په دې فریب او هنر باندې پوهه وو او هغوي دا جنګ د قامولۍ جنګ وګڼلو لکه چې څرنګ په حقیقت کښې وهٔ. د لارډ لیټن د مطالباتو اثر نهٔ صرف په شیر علي خان باندې پریوتلو بلکې په ټولو پښتنو پریوتلو. نن ورځ هم د یورپ او د ایشیا ځنې لوے لوے حکومتونه چې څهٔ وخت د یو ملک د اخستو نیت وکړي یا د هغه ملک حکومت د خپلې مرضۍ او پالیسۍ تابع کول غواړي نو هغوي د جنګ شروع کولو نه وړومبے د هغې ملک د عامو خلقو په نوم یو اعلان شائع کړي چې زمونږ جنګ د ملک د خلقو خلاف نهٔ دے بلکې د برسراقتدار ټولي برخلاف دے او څهٔ وخت چې دا ټولے د حکومت نه لرې شي نو مونږ به دا ملک په خپلې خودمختارۍ پریږدو. او د هغوي په حکومت کښې به غم غرض نهٔ کوؤ. مګر چونکه واقعاتو د دې قسم اعلانات دروغ ثابت کړي دي له دې کبله په هغې نهٔ چا وړومبے اعتبار کړے دے او نهٔ به اوس کوي. د لارډ لیټن دا اعلان حسب ذیل وهٔ:

**Proclamation issued by the Viceroy on 21-11-1878**

" The Viceroy of India to the Sher Ali Khan,of Kabul, to his Sardars and subjects, and to all the people of Afghanistan. It is now ten years since the Amir

**Sher Ali Khan, after a prolonged struggle, had at last succeed inplacing himself on the throne of Kabul; at that time his dominion still needed consolidation, and the extent of it was still undefined. In these circumstances the Amir, who had already been assisted by the British Govt with money and with arms, expressed a wish to meet the Viceroy of India; his wish was cordially complied with; he was courteously received and honourably entertained by the viceroy at Umbala, the countenance and support he had come to seek were then assured to him; he at the same time obtained further unconditional assistance in arms and money. These tokens of the good-will of the British Govt; which he gratefully acknowledged, materially aided the Amir after his return to his country in securing his position and extending his authority; since then Amir Sher Ali Khan has received from the British Govt;, in confirmation of its good-will, large additional gifts of arms, the powerful influence of the British Govt; has accured for him formal recognition by the Emperor of Russia of a fixed boundary between the kingdom of Kabul and the Khanates of Bokhara and Kokand, the Amir's sovereignty over Wakhan and Badakhshan was thereby admitted and made sure, a sovereignty which had till then been disputed by the Russian Govt;, his subjects have been allowed to pass freely throughout the Indian Empire, to carry on trade, and to enjoy all the protection afforded by the British Govt; to its own subjects; in no single instance have they been unjustly or inhospitably treated within British jurisdiction; for all these gracious acts Amir Sher Ali Khan has rendered no return, on the contrary he has required them with active ill-will open discourtesy. The authority over Badakhshan acquired for him by the influence of the British Govt; was used by him to forbid passage through that province to a British officer of rank returning from a mission to a neighbouring state; he has closed, against free passage to British subjects and their commerce, the roads between India and Afghanistan; he has Maltreated British subjects and permitted British traders to be plundered within his jurisdiction, giving them neither protection nor redress; he has used cruelly and put to death subjects of his own on the mere suspicion that they were in communication with the British Govt; he has openly and assiduously endeavoured by words and deeds to stir up religious hatred against the English, and incited war against the Empire of India. Having previously excluded British officers from every part of his dominion, he refused to receive a British Mission; having left unanswered friendly communication addressed to him by the viceroy, and repelled all efforts towards amicable intercourse between the British Govt; and himself, hs has nevertheless, received formally and entertained publicly at Kabul an embassy from Russia; this he has done at a time when such an act derived special significance from the character of contemporaneous events in Europe, and the attitude of England and Russia in relation thereto. Furthermore, he has done it well knowing, that the Russian Govt; stands pledged by engagements with England to regard his territories as completely beyond the sphere of Russian**

influence. Finally, while this Russian Embassy is still at his capital, the Amir has forcibly repulsed at his outpost an english Envoy of high rank, of whose comming he had formal and timely annoucement by a letter on the viceroy, attesting the importance and urgency of the Envoy's mission. Even then the British Govt; till anxious to avert the calamities of war, defered hostile action, and proffered to the Amir at a last opportunity the Amir has refused to avail himself. It has been the wish of the British Govt; to find the best security for its Indian frontier in the friendship of a state whose independence it seeks to confirm, and of a prince whose throne it has helped to support. Animated by the this wish, the Britiush Govt; has made repeated efforts to established with Amir Sher Ali Khan those close and cordial relations which are necessary to the interest of two neighbouring countries, but its efforts, after being persistently repulsed, have now been met with open indignity and defiance. Amir Sher Ali Khan, mistaking for weakness the long forbearance of the British Govt; has thus deliberately incurred its just resentment. With the Sardars and people of Afghanistan this Govt has still no quarrel, and desire none. They are absolved from all reponsibility for the recent acts of the Amir and as they have given no offence, so the British Govt; wishing to respect their independence will not willingly injure or interfere with them, nor will the British Govt; tolerate interference on the part of any other power in the internal affairs of Afghnaistan. Upon Amir Sher Ali Khan alone rests the responsibility of having exchanged the friendship of the hostility of the Empress of India.

ترجمه : دا هغه اعلان دے چې کوم وائسراے په یویشتم نومبر 1878ء شائع کړے وۀ.

له طرفه د هندوستان د وائسراے، په نوم د امیر شیر علي خان د کابل او د هغۀ د سردارانو او رعایا او په نوم د افغانستان د ټولو خلقو.

د دې خبرې اوس لس کاله وشو چې د یوې وړدې مقابلې نه پس اخر کار امیر شیر علي خان خپل خان د کابل په تخت باندې په کښېنولو کښې کامیاب کړو. په دغه وخت کښې هم لا د هغۀ مفتوحه ممالکو راغونډیدل غوښتل او د هغې حدود هم لا هغه شان غیر معین وو په دې حالاتو کښې امیر چې ورله حکومت برطانیه وړومبے هم د روپو او د اسلحې امداد ورکړے وۀ د هندوستان د وائسراے سره د ملاقات کولو منشا ښکاره کړه د هغۀ دا منشا په خوشحالي پوره کړې شوه او د انبالې په مقام باندې وائسراے د هغۀ په ښه طریقه استقبال وکړو او په ډیر درناوښت ئې د هغۀ میلمستیا وکړه او د کومې ملګرتیا او د مرستې په طلب کښې چې هغه راغلے وۀ د هغې هغۀ سره پوره وعده وشوه. د دې نه علاوه هغۀ سره نور غیر مشروط امداد هم د وسلې او هم د لافو وشو. امیر صاحب چې خپل ملک ته واپس شو نو د حکومت برطانیه د نیک نیتۍ دې ښکاره نښو د هغۀ د پوزیشن (طاقت) په مضبوطولو کښې ډیر امداد وکړو. او د هغۀ حکومت ئې نور هم وسیع کړو د دې نه پس امیر شیر علي

خان د حکومت برطانیه نه د هغوي د نیک نیتی په ثبوت کښې د وسلې نورې لویې تحفې حاصلې کړي دي. د حکومت برطانیه زوررور اثر د هغۀ دپاره په شهشناه روس باندې د حکومت کابل او بخارا او قوقند تر منځ یوه پخه پوله تسلیم کړې ده. هم په دا شان د امیر بادشاهي په واخان او بدخشان باندې تسلیم کړې شوه. حالانکې د دې نه وړومبے روسي حکومت د امیر دا بادشاهي نۀ منله د هغۀ رعایا ته په ټول هندوستان کښې د ګرځیدو اجازت وۀ چې هغوي خپل تجارت وکړي او د هغې امن او حفاظت نه هر قسم فائده وچته کړي. چې کوم د حکومت برطانیه خپل رعیت ته حاصل وه. داسې یو مثال هم نشته چې چا هغوي سره په انګریزي علاقه د بې انصافۍ او د میلمستیا د اصولو نه خلاف سلوک کړے وي د مهربانۍ د دې ټولو کارونو په عوض کښې امیر شیر علي خان مونږ سره هیڅ نۀ دي کړي. بلکې د دې برخلاف هغۀ د دې په بدل کښې ښکاره بدنیتي او بدخلقي کړې ده. کوم تسلط چې د حکومت برطانیه د اثر په زور د هغۀ دپاره په بدخشان باندې حاصل کړے شوے وۀ هغه دا رنګ استعمال کړو چې هغۀ د افغانستان او هندوستان په منځکښې ټولې لارې په انګریزي رعایا او د هغوي د تجارت دپاره بندې کړې دي. هغۀ انګریزي رعایاسره بدسلوکي کړې ده. او انګریزي سوداګران ئې پخپل ملک کښې لوټ کیدو ته پریښې دي او د هغوي حفاظت ئې نۀ دے کړے او نۀ ئې د هغوي داد رسي کړې ده. هغۀ د خپل رعیت خلقو سره صرف په دې شک چې هغوي حکومت برطانیه سره راز باز ساتي ظالمانه سلوک کړے دے او وژلي ئې دي. هغۀ ښکاره او مسلسل کوشش کړے دے چې هغه د انګریزانو برخلاف په قول او فعل سره مذهبي نفرت په خلقو کښې پیدا کړي او د هندوستان د سلطنت برخلاف جنګ دوخاره کړي. وړومبے خو هغۀ ټول انګریزي افسران د خپل سلطنت په هره حصه بند کړل او انګریزي مشن ته ئې د راتلو نه انکار وکړو بیا ئې د وائسراے د دوستانه خط چې هغۀ ته ئې لیکلے وۀ هیڅ جواب ور نکړو او د حکومت برطانیه او په خپل منځکښې ئې د دوستانه تګ راتګ ټول کوششونه وتمبول. مګر سره د دې هغۀ بیا یوه روسي سفارت ته سرکاري طور په کابل کښې هرکلے ووئیلو او په ښکاره ئې د هغوي خاطر تواضع وکړو. دا ټوله کارروائي هغۀ په داسې وخت کښې وکړه چې په یورپ کښې په هغه ورځو کښې د یو خاص قسم واقعاتو په سبب او د انګلستان او د روس په منځکښې د دې واقعاتو متعلق د یوې خاصې رویې په سبب دې کار ته یو لوے اهمیت حاصل وۀ. د دې نه علاوه هغۀ دا کار سره د دې علمه وکړو چې روسي حکومت انګلستان سره د مختلفو عهدنامو په ذریعه پابند دے چې هغه د افغانستان ملک د خپل اثر د دائرې نه بهر وګڼي بیا د دې ټولو دپاسه امیر صاحب سره د دې چې روسي سفارت لا هم هغه شان په کابل کښې موجود وۀ، یو انګریزي سفیر چې د لویې رتبې خاوند وۀ د خپلې سرحدي څوکۍ په خلۀ کښې په زور د وړاندې تلو نه منع کړو حالانکې

هغهٔ د روانیدو اطلاع هغهٔ ته په وخت او په سرکاري طور د یو خط په ذریعه چې وائسرائے هغهٔ ته لیکلي وو ورکړې وه او په هغې کښې ئې هغهٔ ته د دې سفیر د راتلو د مقصد اهمیت او ضرورت ښکاره کړے وهٔ. مګر بیا هم چونکې حکومت برطانیه دا نهٔ غوښتل چې د جنګ مصیبتونه دې پیښ شي له دې کبله هغوي د امیر خلاف معاندانه کارروایی له ډیل ورکړو. او هغهٔ له ئې یوه اخري موقع ورکړه چې هغه خپل ځان د هغې سزا نه بچ کړي چې د کومې هغه د خپلو کارونو په سبب لائق شوے وهٔ مګر امیر د دې موقعې نه د فائدې وچتولو نه انکار وکړو. د حکومت برطانیه تل دا خواهش پاتې شوے دے چې هغوي د خپل هندوستاني سرحد حفاظت په داسې طریقه وکړي چې دې بادشاهی سره چې کومې ازادی هغوي تسلیم کړي دي دوستي وساتي او د هغې بادشاه سره ملګرتیا وکړي. د دې خواهش په سبب حکومت برطانیه متواتر کوششونه د دې خبرې کړي دي چې امیر شیر علي خان سره هغوي هغه نزدې او د دوستی تعلقات قائم کړي چې کوم د دوؤ ګاونډي ملکونو د مشترکې فائدې دپاره ضروري دي. مګر دا کوششونه وروسبے خو په بار بار د هغهٔ د طرف نه مسترد شول او اوس د هغې ښکاره مخالفت په بې عزتی او مقابلې سره کیږي. امیر شیر علي خان د حکومت برطانیه دا لوے صبر د هغوي کمزوري وګڼله او په دې وجه ئې ارادتاً د هغوي خفګان په ځان واخستو. د دې حکومت د افغانستان سردارانو سره او عام خلقو سره اوس هم هیڅ تنازعه نشته او نهٔ ورسره پیدا کول غواړي. هغوي د امیر د موجوده کارونو نه (بالکل) بري الذمه دي. او چونکې هغوي هیڅ جرم نهٔ دے کړے له دې کبله حکومت برطانیه به د هغوي د ازادی قدر کوي او پخپله رضا به نهٔ هغوي ته څهٔ نقصان ورکوي او نهٔ به د هغوي په معاملو کښې دخل ورکوي او نهٔ به حکومت برطانیه دا برداشت کړي چې چرته بل حکومت د افغانستان په اندروني معاملاتو کښې دخل ورکړي. د ملکهٔ هندوستان دوستي په دشمنی د بدلولو ذمه واري صرف په امیر شیر علي خان ده.

## پنځلسم باب

په خیبر حمله د جرنیل براؤن د سالاری‌لاندې، د زخه خیلو د لاسه پرې چپاؤونه، په علي مسجد د فیرنګیانو قبضه، په اولسم دسمبر د جرنیل براؤن په جلال اباد پیشقدمي، او بې ډزه ډوزه قبضه، د افریدو دچپاوونو نه د بچ کیدو دپاره په بازار چپاؤ، په مومندو د فیرنګیانو چپاؤ چې خلقو ته د فیرنګیانو زور معلوم شي، په بازار او باړه د فیرنګیانو چپاؤ ته نیت، ټول افریدي پرې جمع شو او دا خیال انګریزانو پریښودو.

په شلم نومبر د نمر پریوتو په وخت کښې د جنرل براؤن د فوځونو دوه

بـریگیډه یو د بریګیډیر ټټلر او بل د بریګیډیر میکفرسن د لاندې په دوو ټکړو کښې د خیبر پـه دره بـانـدې په دې غرض روان شول چې په یویشتم نومبر د غرمې په وخت کښې هغوي د عـلـي مسجد په شا چې کومې غونډۍ دي په هغې پریوځي. تجویز دا وو چې براؤن په یویشتم نومبر د مخامخ نه د شادي بګیاړ په لاره په علي مسجد ورشي او د ټټلر او د میکفرس فوځونه بـه د شا او د قطب نه په علي مسجد حمله کوي. په یویشتم نومبر د براؤن فوځونه د مخامخ نه پـه خیبـر ورننـوتـل او چې غرمه کیده نو یوه زورروره حمله ئې په علي مسجد وکړه. د پښتنو فـوځـونـو هـم ښه په بهادرۍ مقابله وکړه او ټوله ورځ یو خونریز جنګ وشو مګر د ټټلر او میـکـفـرسـن فـوځـونه لا خپل خپل مقام ته نۀ وو رسیدلي په دې سبب براؤن د علي مسجد په اخستـو کښې نـاکـامیـاب شـو بلکې ماښام ماښام ته د کافي نقصان وچتولو نه پس هغه د علي مسجـد د خـواؤشـا نـه واپـس شـو. ولې په دې اثنا کښې د دویشتم نومبر په شپه د میکفرسن بـریـګیډ د رهتاس غونډو ته راورسیدو او د علي مسجد شا ته د ټټلر بریګیډ هم د کته کشتیه پـه مـقـام پـریـوتـلـو او دغـه شان علي مسجد د دریو طرفو نه راګیر شو. د دومره لوے فوځ د مـقـابـلـې انتـظـام پښتـنـو نۀ وۀ کړے له دې کبله څۀ وخت چې هغوي د میکفرسن او د ټټلر د فـوځـونو د آمد نه خبر شول نو شپه په شپه د بازار په لاره افغانستان ته وتښتیدل. جنرل براؤن په دویشتم نومبر سحر وخت لا په علي مسجد باندې د دوباره حملې کولو دپاره ځان تیارولو چې خبر راغے چې علي مسجد خالي پروت دے. پس انګریزي فوځ بې مقابلې په هغه ورځ په هغې باندې قبضه وکړه.

د دې نـه پـس څۀ انګریزي فوځونه په څلیریشتم نومبر د ډکې په طرف روان شول او څۀ په خیبر کښې د آمدورفت د لارې د حفاظت دپاره پاتې شول. په ډکه کښې فیرنګیان بلا مـقابلې ورننوتل ځکه چې کابلي فوځونو د هغوي د راتلو نه وړومبے ښار خالي کړے وۀ په دې ځاے کښـې د لال پـورې او د مـومـندو خان محمد شاه د کمنارې او د براؤن سلام له راغلو. انـګـریزان هغۀ ته ډیر په قهر وو ځکه چې هر کله چې پښتنو د علي مسجد قلا خالي کوله نو د هغۀ سرې پـه هـغـې بـانـدې د قبضې کولو دپاره راروان شوي وو ولې د هغوي د رارسیدو نه وړومبے وړومبے انـګـریـزانـو په هغې قبضه کړې وه. د کمنارې نیت هغۀ ته بالکل بد وۀ ولې چـونـکـې د انـګـریزي فوځ د آمدورفت ټوله لار د مومندو په علاقه کښې پرته وه له دې کبله کمنارې په خپل ځان زور تیر کړو او هغۀ ته ئې په ښکاره هیڅ ونۀ وئیل.

اګـرچـې د عـلـي مسـجد د جنګ په وخت کښې نۀ افریدو او نۀ مومندو د فیرنګیانو بـاقـاعـده مـقابله کړې وه ولې د افریدو کشرانو د فیرنګیانو د مشکلاتو په زیاتولو کښې هیڅ کسـر نـۀ پریښوذو. په ټوله لار باندې د جمرود نه عن تر ډکې پورې یو ځاے هم دا شان نۀ وۀ چې د هغوي د لاسه خلاص وۀ. چرته به چې یکه دوکه سپاهیان یا غیر مسلح ملاتړ د هغوي په

لاس راتـلـل نـو هـغـوي بـه بـې دريغـه وژل او د هـغـوي نه به ئ ټوپکونه او سامان تښتولو. د خـوراک او د رسـد سـامـان سـره بـه چې کومه محافظه فوځي دسته په ملګرتيا کښې راتله په هـغـې به ناساپه راپريوتل او د يو ساعت د مضبوطې جګړې نه پس به ئ څيزونه لوټ کړل. په دې شـان د بـراؤن د فـوځ يـوه لـويـه حـصه د سامان جنګ او د خوردونوش دسامان د رسولو دپاره اوښانو سره په ملګرتيا کښې مقرره شوه. سره د دې به بيا هم افريدو اکثر اوقات شومه دم د فيـرنـګيـانو په کيمپ او کله کله به ئ د هغوي په څوکو باندې په لويو لويو ټولګو کښې نـاساپې داسې په زور چپاوونه وکړل چې په لږه موده کښې ئ هغوي پوزې له راوستل. براؤن د دې چپـاوونو د تدارک دپاره قسماقسم تجويزونه وکړل. په ټوله لار باندې د فوځي څوکو د جـوړولـو نه علاوه هغۀ په درۀ خيبر کښې د يو سر نه تر بله سره پورې ګشت لګونکې دستې مـقـررې کـړې. په لړې درو کښې به هغۀ د افريدو او د شنوارو غازيانو د معلومولو دپاره خپل جاسـوسـان استول او حـکم ئ وکړو چې هر څوک چې د خوردونوش او د جنګ سامان يا فـوځ تـه د نقصان رسولو په کار کښې ونيوے شو هغه دې په هغه ځاے کښې چاند ماري کړې شي. ولې سـره د دې ټولو تجويزونو نۀ خو د هغۀ اسونه د افريدو او د شنوارو د لاسه خلاص شـول او نـۀ د هـغـۀ قـچرې. هر کله به چې هغوي د اوبو څښلو دپاره ووتل نو هم به د هغوي د تښتـولـو دپاره سرې ناست وو. ورو ورو چې څومره افريدو ته تجربه حاصليدله هغه هومره به هـغـوي پـه خپـل کـار کښې مـاهـران کيدل. تر دې پورې چې يو ځل هغوي د علي مسجد نه چـارچـاپيره په ټولو څوکو باندې داسې چپاوونه وکړل چې د شاګۍ په ټولو غونډو باندې ئ مـکـمـلـه قبـضـه وکړه او د ډکې او جمرود په مېنځکښې لاره ئ بنده کړه او ډير مال ئ لوټ کـړو. د افـريدو د دې دست برد نه انګريزي فوځ ډير سخت تنګ شو او اخر کار کمناري د ډکـې نـه هـغـوي سـره د خبـرو اترو کولو دپاره راغلو او د فوځ يوه مضبوطه دسته ئ د قدم په کـلـې د حـمـلـې کولو دپاره ځان سره راوسته. ولې د فيرنګيانو د فوځ د رارسيدلو نه وړومبے افـريـدو خپـل ځـانـونـه، بـال بچ او د کـور سامان د غرونو سوکو ته خيژولي وو په دې سبب انـګـريـزي فوځ صرف د کورونو چتونو ته اور ورته کړو او بيا واپس شول. په دې چپاؤ کښې بـانـدې انـګـريـزانـو تـه صرف عارضي فائده وشوه د هغوي مقصد خو دا وۀ چې په ډکه او په لـنـډي کـوتـل باندې د ډيرو ورځو دپاره خوراک وغيره راجمع کړو. ولې د افريدو د لاسه د هـغـوي دا مدعا سر ته ونۀ رسيده. صرف د ورځې ورځې خرڅ هغوي ته رسيدے شو او له دې کبـلـه د فـوځ پـه وړانـدې تـلـو کښـې سـخـت مشـکلات پيدا شو. اخر په اول دسمبر براؤن حـکـومـت هـنـد ته د نور کومک دپاره تار ورکړو. حکومت هند جنرل ماډ ته چې لا هم هغه شـان پـه نوښار باندې پروت وۀ حکم ورکړو چې دوه پلټنې سمدستي د براؤن د آمدورفت د لارې د حفاظت دپاره خيبر ته وليږه. د دې فوځ نه يوه ورځ پس جنرل ماډ ته بيا بل حکم وشو

چې تـهٔ خپل ټـول فـوځـونه د براؤن امداد ته ولیږه او علاوه د خپل بریګیډ نه تر علي مسجد پـورې د ټول فوځ سالاري واخله او د آمدورفت لاره ټوله خلاصه وساته. د ماډ فوځ په شمار کښې کـم و زیـات شپږ زره وۀ چې پـه هغې کښې ګوره او دیسي پلټنې، رسالې او توپخانې شاملې وې.

هـر کـله چې دا کومک ورسیدو او په خیبر کښې ئې ځاے په ځاے مورچې ونیولې نو پـه اولسـم دسـمبر د جـلال اباد په طرف پیشقدمي شروع شوه. کابلي فوځونه د وړومبے نه جـلال اباد نه تلي وو صرف د چارچاپیره علاقې پښتانۀ قومونه په دې داؤ کښې ناست وو چې کـلـه بـه مـو لاس بـر شـي چـې یـا خـو فیـرنـګـے د ملک نه وباسو او یا ورته په لاره کښې ډیر مشکلات پیدا کړو. بهرصورت بـراؤن بې ډزه ډوزه په جلال اباد ورننوتو اګرچې کابلي فـوځـونو بغیر د علي مسجد نه بل ځاے لا مقابله نۀ وه کړې ولې د فیرنګیانو دپاره د خوراک او د سامان جنګ د راوړلو سوال دومره ګران وۀ چې د براؤن دپاره د خپل پروګرام مطابق په شتـاب وړاندې کیدل او په کابل باندې زور اچول ناممکن شو. چنانچه هم د دې مشکلاتو په سبب هغه په جلال اباد کښې پاتې شو او د خوراک د راجمع کولو دپاره ئې سخت کوششونه راواخستل.

پـه دې ټـولـه مـوده کښې افریدو خپلې ټولې کارروایی جاري وساتلې او د فیرنګیانو فـوځـونـو تـه ئې د یـوې ګـړۍ ارام ور نـهٔ کـړو. اخـر کار چې فیرنګیان تنګ شو نو په یولسم دسمبر کـمـنـاري مـاډ تـه ولیـکـل چې د زخه خیلو رویه سخته قابل اعتراض ده او د هغوي سر کوبـي پـکار ده مګر د چورې د ملک دین خیلو متعلق هغۀ ولیکل چې في الحال د هغوي تـعـلقات فیرنګیانو سره ښۀ دي نو هغوي سره هیڅ چیړ چاړ پکار نۀ دے. له دې کبله کمناري دا تـجـویـز وکـړو چې د فوځ یوه دسته دې د علي مسجد د طرف نه او بله دسته دې د ډکې د طرف نـه د بازار پـه دره بـانـدې د شپې چپاوونـه وکـړي او د زخـه خیلو قام ته دې ښه سزا ورکـړي. د بـازار دره د جـمـرود نـه قـریبـاً شپـاړس میله قبلې ته او د ډکې نه په څۀ لږه فاصله سهیل طرف ته پرته ده او چارچاپیره د هغې نه شپږ شپږ زره او اووۀ اووۀ زره فټه وچت غرونه دي او قـریبـاً لـس میلـه وړه ده او درې میلـه پلنه ده. د بازار د درې نه مخکښې نور سهیل ته د بـارې او تیـراه دره پـرتـه ده. د بازار د درې خلق اکثر په ګارو او ځنې ځنې د ختو په کوروںو کښې وسیږي.

په نولسم دسمبر پنځۀ بجې ماښام د فوځ یوه مضبوطه دسته د جنرل ماډ د خپل کمان د لانـدې د عـلـي مسـجـد نـه پـه هـغـه لاره باندې روانه شوه چې کومه د چورې په خوا کښې تیـریږي. د ټولې شپې د مزل نه پس څلور بجې سحر هغوي ایله د چورې خواؤشا ته ورسیدل چې د بـازار د درې نـه څو میله دې خوا ده او دغه شان ماډ په زخه خیلو باندې د شپې په چپاؤ

کولو کښې ناکامیاب شو. د څۀ ساعت د ارام نه پس جنرل د نمر ختو سره د چورې نه بیا روان شو او دوه بجې ماسپښین د بازار د درې ورومبي کلي ولۍ ته ورسیدو. دې خوا د ډکې د طرف نه د بریګیډیر جنرل ټټلر دسته سره د توپو په اتلسم د بازار په طرف روانه شوه او په شلم سحر د څخوبي درې ته ورسیده او بیا د هغې ځاے نه د بازار درې ته راکوزه شوه. په شلم دسمبر د زخه خیلو ملکان راټول شول او د ماډ په کیمپ کښې انګریزي پولیټیکل ایجنټ سره جرګه شول او د ماډ سره یو کپتان ټکر او بل مسټر کننګهم په طور د پولیټیکل افسرانو راغلي وو چونکې کپتان ټکر سختې تبې نیولے وۀ په دې وجه کننګهم هغوي ته د صلحې شرطونه پیش کړل:

☆ زخه خیل به د خپل جرمونو په سزا کښې یو زر روپۍ جرمانه ورکوي.

☆ شپږ یرغمال به د پولیټیکل ایجنټ په خوښه انګریزانو ته حواله کوي.

☆ ټول زخه خیل به د ملک خواص ملکي په ځان مني.

د جرمانې د ادا کولو دپاره یا نغدې روپۍ راکړئ او یا د هغې په بدل کښې وسله یا څاروي راته حواله کړئ. په دې سودا کښې د پټاخیدار ټوپک قیمت پنځلس روپۍ او د ګولي دار څلویښت روپۍ مقرر شو او د څاروو قیمت د کمسریټ د افسر په فیصله پریښودې شو.

د ډیرو خبرو اترو نه پس زخه خیلو دا شرطونه نامنظور کړل له دې کبله په یویشتم دسمبر نهۀ بجې انګریزي فوځونو د هغوي د کورونو او د برجونو په ورانولو لاس پورې کړو. زخه خیلو د ورومبے نه خپل ټول بال بچ او مال اسباب غرونو ته خیژولې وو نو دې فوځ تش یو څو برجونه او یو څو د ګارو دروازې والوځولې او بیا د شپې د ماډ فوځ واپس ولۍ ته او د ټټلر فوځ د تبۍ په لاره ډکې ته راغلو. دې فوځ د زخه خیلو یو کس ته هم څۀ نقصان ونۀ رسولو البته د خپلې پرې او د ملک دین خیلو په یوه کلي ئ یو څو ډزې وکړې او یو تن ئ ترینه مړ کړو. دا ټول کار په خطایۍ دا شان وشو چې د زخه خیلو او د ملک دین خیلو صرف په دې سبب بدې شوې وه چې مک دین خیلو فیرنګیانو سره دوستي ساتله. د ملک دین خیلو دا کله چې په کومې باندې فیرنګیانو ډزې وکړې او سړے ئ ترینه وویشتو په وروستنې اوړې کښې د ګرمۍ تیرولو دپاره تیراه ته تلے وۀ او په دې ورځو کښې د ژمي د تیرولو دپاره کجورۍ ته راکوزیدل. چونکې هغوي د زخه خیلو نه ویریدل او په هغوي باندې نۀ شو راتیریدلې په دې سبب هر کله چې هغوي د فیرنګیانو د راتلو نه خبر شول نو په یویشتم دسمبر د هغوي په ډاډ باندې د بازار په دره راروان شول. فیرنګیانر دا خیال وکړو چې دا د زخه خیلو کلې دي له دې کبله هغوي د دوئ نه د څاروو د نیولو دپاره په دوئ چپاؤ وکړو او یو سړے ئ ترینه مړ کړو. کپتان ټکر ته چې دا غلطي معلومه شوه نو د ملک دین خیلو نیولي

سرې ئې پرېښودل. د هغوي مال او وسله ئې هغوي ته پرېښوده او درې سوه روپۍ ئې د مړي خپلوانو ته خون بها ورکړه. د درې سوو روپو نه علاوه دوه سوه روپۍ نورې هم د دې کلي په خلقو باندې وویشلې شوې.

په اول جنورۍ 1879ء براؤن او کمناري په جلال اباد کښې یو لوے دربار وکړو او کومو خانانو چې د فیرنګیانو د ویرې نه د هغوي اطاعت قبول کړے وۀ هغوي په دې دربار کښې حاضر شول. په دې دربار کښې کمناري بیا هغه ټول الزامونه دوباره بیان کړل چې کوم لارډ لیټن په شیر علي خان باندې د یویشتم نومبر په اعلان کښې لګولي وو. خواه دې خوانینو د کمناري په تقریر او د هغۀ په دلائلو د زړۀ نه اعتبار کولو او کۀ نه ولې په خلۀ هغوي ټولو د عبدالخالق خان د بیسود کلي په ذریعه د کمناري تقریر ته ډیر ښۀ او درست ووئیل د امیر صاحب د ظلمونو بد ئې بیان کړل او د فیرنګیانو په راتلو او د هغوي د عدل او انصاف په طریقو ئې شکریه ادا کړه. د دې نه پس د مومندو او د فیرنګیانو تعلقات تر څۀ مودې پورې ښۀ پاتې شول.

دا خو یو څو خوشامند ګر او په زړۀ کمزوري خانان وو چې دې دربار ته راغلل ولې مغل خان د ګوشتې په هغې غیرتیانو پښتنو کښې وۀ چې د کمناري سلام له راتلل ئې د خپل قام دپاره شرم ګڼلو. په دې وجه کمناري هغۀ له د سزا ورکولو دپاره د بهانې په تلاش کښې شو. د انګریزانو دا خوئ دے چې هر څوک چې د هغوي اطاعت په خوش رضایۍ او په نرمۍ قبول کړي او بې جنګ جګړې هغوي په ملک کښې پرېږدي نو هغه هومره هغوي د داسې خلقو د بزدلۍ نه فائده وچتوي او په هغوي باندې د خپل رعب او دبدبې کښېنولو دپاره نوره هم ډیره سختي کوي. اګرچې د خیبر د خلې نه بهر عین تر جلال اباد پورې د فیرنګیانو د آمدورفت لاره د مومندو په علاقه کښې پرته وه خو مومندو په حیثیت د قام فیرنګیانو سره څۀ چیرچاړ نۀ وۀ کړے. او له دې سببه په دې اطرافو کښې د انګریزانو فوځونو ته هیڅ مشکلات پیښ نۀ شول. ولې د اول جنورۍ د دربار نه یوولس ورځې پس براؤن د کمناري په سفارش د مومندو علاقې ته وړومبے فوځي چپاؤ د دې دپاره واستولو چې د هغوي یو خیل ته سزا ورکړي. بهانه کمناري دا جوړه کړه چې د مومندو یوڅو ډاکې مارو هم د مومندو په یو کلي باندې ډاکه غورځولې ده. بس د کمناري دپاره دا پوره وه هغۀ له شیطان د مغل خان د سرکوبۍ دپاره موقع په لاس ورکړه. فوراً ئې براؤن ته ووئیل چې مومندو له سزا پکار ده. براؤن د هغۀ په لمسه بریګیډیر جنرل جینکنز سره د توپخانې او پنځو سوؤ سورو او درې سوو پیادوؤ ولیږلو. دې دستې د شیر کړهـ په کلي باندې ناساپې چپاؤ وکړو او اګرچې هغوي یو ډاکه مار هم ونۀ نیولو ولې فیرنګیانو د کلي ټول ملکان په دې الزام کښې ګرفتار کړل او پیښور ته ئې راولیږل چې تاسو مجرمانو له پناه ورکړې ده.

د دې چپاؤ نه لږې ورځې پس په اوولسمه جنورۍ د شنوارو په علاقه کښې چې د مومندو علاقې سره جنګیدلې ده د انګریزي فوځ یو ماشکي قتل شو د دې قتل د بدل اخستو دپاره په څلیریشتمه جنورۍ د فوځ یوه بله دسته د شنوارو ملک ته روانه شوه. د فوځ دا دسته د نکوتي او د راجه میاني کلو نه راتاؤ شوه او دواړه کلي ئې وسیزل. د فوځ د ویرې نه د کلي په خلقو کښې پنځو تنو د تیښتې کوشش وکړو خو د فیرنګیانو سپاهیانو دا پنځهٔ واړه په ټوپکو وویشتل. د دې نه علاوه ئې اویا تنه سړي دوه سوه څاروي څهٔ ګلهٔ او قچرې کیمپ ته ترلې راوستل. په دې دواړو کلو کښې صرف په دوؤ تنو باندې د ماشکي د قتل شک وهٔ. د بې ګناه خلقو کورونه سیزل د پنځو تنو چې هغه بې ګناه او بې وسلې وو ویشتل او د اویا تنو سړو او څارو بوتلل تش د دې دپاره شوي وو چې خلقو ته د فیرنګیانو زور معلومه شي. دا د کمناري د کار طریقه وه او دغه شان سړے د لارډ لیټن منظور نظر وهٔ. په ګرفتار شوو سړو او څارو کښې څاروي خوهسې بې وجې ټول ضبط کړې شو او سړي د دوؤ تنو نه بغیر چې په چا د قتل الزام وهٔ ټول پریښودې شول. د دې قسم واقعاتو په مومندو او په شنوارو کښې د قام ولې یوه زبردسته جذبه پیدا کړه. او اخر د فیرنګیانو مقابلې ته راووتل او بیا براؤن یو نه بلکې په نورو ډیرو فوځي چپاوونو د مومندو په رعیت کولو باندې مجبور شو.

دې خوا چې د مومندو او د شنوارو په ملک کښې دا کارونه روان وو نو بل خوا زخه خیلو په ډیر زور شور سره خپل دست برد شروع کړے وهٔ. په ځاے د دې چې د بازار په دره باندې د فیرنګیانو وړومبي چپاؤ زخه خیل ویرولے وے نو هغوي په دې نور هم ډیر سخت په قهر شول. او یو سور تنور ئې په فیرنګیانو راکوز کړو. ځاے په ځاے ئې د هغوي د تار برقي تارونه پریکړل د هغوي په څوکو او د باربرداری په څارو باندې ئې دومره حملې وکړې چې د څهٔ وخت دپاره په خیبر کښې د آمدورفت لاره بالکل بنده شوه. اخرکار کوم افسر چې د فیرنګیانو د طرف نه د جمرود او د جلال اباد ترمنځ دلارې د حفاظت په کار مقرر شوے وهٔ هغهٔ کمناري ته ولیکل چې د بازار او د باړې په درو باندې یو دویم چپاؤ پکار دے او تر څو پورې چې زخه خیل پوره طور سره رعیت شوي نهٔ وي تر هغه پورې دې انګریزي فوځونه د بازار او باړې درې نهٔ خالي کوي. کمناري فوراً دې تجویز سره اتفاق وکړو او جنرل ماډ ته ئې د دویم چپاؤ د انتظام دپاره ولیکل. د دې تجویز په مطابق په څلیریشتمه جنورۍ څهٔ فوځونه د جمرود نه څهٔ د لنډي کوتل نه څهٔ د علي مسجد نه او څهٔ د باسول د بازار په دره ور روان شول. زخه خیل د فیرنګیانو د راتلو نه وړومبے خبر شوي وو او د بازار دره ئې ټوله خالي کړې وه. هغوي خپلو کورونو ته پخپله اور ورته کړے وهٔ. د دې نه فیرنګیانو ته معلومه شوه چې زخه خیلو د جنګ پوره نیت کړے دے. او په اسانه د فیرنګیانو اشنایي ته تیار نهٔ دي. په اوویشتمه جنورۍ فیرنګیان بازار ته ورسیدل او چرته یکه دوکه زخه خیل ئې چې بیاموندل

هـغـوي ئ قتل کړل او پس د هغې نه د بازار په دره کښې ديره شول. په اتويشتمه جنوری ماډ
پـخپـلـه د بـاړې لار د تـلـو دپاره ملاحظه کړه ولې وۀ ئ ليدل چې په چارچاپيره غرونو باندې
بيشـمـاره ډير زخه خيل راجمع شوي دي او په هر ځاے کښې د فيرنګيانو د مقابلې دپاره تيار
نـاسـت دي. د بـازار د دې دويم چپاؤ دا نتيجه شوه چې د افريدو قريباً قريباً ټول قامونه د زخه
خيـلـو پـه مـرستـه ودريـدل. تر دې پورې چې د جنرل ماډ دا خيال پيدا شو چې په باړه باندې
حمله کولو کښې به فيرنګيانو ته سخت جنګونه پيښ شي. له دې کبله هغۀ د بازار نه حکومت
هند ته د باړې د حملې سوال پيش کړو. د ماډ د خط لا څۀ جواب حکومت هند نۀ وۀ ورکړے
چـې په ديرشمه جنوری کپتان ټکر پوليټيکل افسر جنرل ماډ ته دا رائ ورکړه چې چونکې د
باړې په لاره د فيرنګيانو مقابلې ته نۀ صرف زخه خيل بلکې کوکي خيل، اکا خيل، قمبر خيل،
ملک دين خيل، سپاه او سنګو خيل شنواري او ورکزي هم رايوځاے شوي دي له دې کبله به
غـالبـاً چـې بـاړې تـه پـه تلو کښې ډير سخت مشکلات پيښ شي. پس جنرل ماډ د بازار او د
بـاړې زخـه خيلو سره يو څو معمولي جګړې وکړې او په دريمه فروری علي مسجد ته واپس
شـو. د دې چپـاؤ نـه عـلاوه د جـنـوری او د فـروری پـه ميـاشتـو کښې مومندو سره بيا ډيرې
زبردستې جګړې وشوې او د دواړو طرفو نه کافي نقصانونه وشول.

## شپاړسم باب

پـه کـرمـه د جـنـرل رابـرټـس چپاؤ او تر پيواړ کوتل بې ډزه ډوزه د فيرنګيانو قبضه. په پيواړ
کوتل د سالار کريم خان د لاسه د فيرنګيانو نقصان، د خنې کابلي افسرانو د سستيا د لاسه په پيواړ
کـوتـل د فيـرنـګيانو قبضه، شهيد حضرت شاه چې رابرټس د فوځ د وړاندې پانسي کړو، په کرمه
کښـې د جـرنيـل رابـرټـس دربـار، د ټـل نـه تـر شتـرګردن د افغانستان په علاقه د قبضې اعلان، په
خـوست باندې د رابرټس چپاؤ، محمد اکرم د خوست ګورنر د فيرنګيانو سره د خپل قام برخلاف
سـازش او مـلـکـرتـيـا، د مـنګلو غازيانو توره، امن پسنده خلقو ښځو او ماشومانو باندې د فيرنګيانو
ظـلـمـونـه، پـه ټـانـک بـانـدې د وزيـرو او مسـعـودو حمله، دې حملې خوست ته فائده ورسوله، د
فيـرنـګيـانـو خپل نوکر شهزاده سلطان جان سدوزے د طوري قبيلې سپاهيانو سره په خوست کښې
ګورنر مقررول، د رابرټس کرمې ته د واپسي نيت، د منګلو، جاجيانو، وزيرو او جدرانو غازيانو په
خوست حمله او د دوئ د برکته د خوست د علاقې د انګريزي قبضې نه عمر له وتل.

په يويشتم نومبر جنرل رابرټس خپل فوځونه د ټل نه د افغانستان حدودو ته ورپورې
ويستـل. کـابـلي فوځونو د هغۀ د آمد نه وړومبے ملک خالي کړے وۀ له دې کبله هغۀ بې ډزه
ډوزه تـر اوويشتـم نـومبـر پورې د کرمې په علاقه کښې د امير صاحب په ټولو قلاګانو باندې

قبضه وکړه. د کرمې اخستو نه پس رابرټس د خپل کیمپ نه دولس میله پورې فوځې ملاحظه وکړه او قریباً قریباً د پیواړ تر کلي پورې ورسیدو. د دې ځایے نه هغهٔ په دوربین کښې د امیر صاحب فوځونه د کوتل په طرف په واپسی کښې ولیدل. کوتل د سطح سمندر نه قریباً اتهٔ زره شپږ سوه فټه او د کرمې نه درې زره اتهٔ سوه او شل فټه وچت دے. د کرمې نه کابل ته لار هم په دې کوتل وتلې ده. له دې کبله کابلي فوځونو د فیرنګیانو د پیشقدمی په وخت کښې دا غوره وګڼله چې په کوتل باندې به د فیرنګیانو د فوځ یوه ښه مضبوطه مقابله وکړو. له دې سببه هغوي خپل ځان پیواړ کوتل ته د هغه ځایے د مضبوطولو دپاره رسولو.
طوري مخبرانو رابرټس ته خبر ورکړو چې دا فوځ صرف درې پلټنې دي او هغوي سره دولس توپې دي. رابرټس په دې لالچ کښې شو چې زهٔ سمدستي دا توپې د کابلي فوځ نه ونیسم. پس هغهٔ په دې فوځ په اتویشتم نومبر د حملې کولو اراده وکړه. په اتویشتم نومبر پنځهٔ بجې سحر انګریزي فوځونو وسله واخسته او د حملې دپاره خپل کیمپ نه روان شو. شپه یخه او ډیره زیاته تیارهٔ وه. په دې وجه ټول فوځ لا کیمپ نه وتے نهٔ وهٔ چې د ځنې ځنې پلټنو نه لاره خطا شوه او په ورانو ویجاړو باندې سر شول. د ډیر ګړ بړ او پریشانۍ نه پس قریباً د نمرختو وخت کښې دې فوځ لار بیامونده او پخپله لار روان شول. رابرټس لس بجې سحر حبیب کلي ته چې د کرمې نه څوارلس میله لرې دے ورسیدو په دې ځایے کښې هغهٔ ته مخبرانو خبر ورکړو چې کابلي فوځونه ډیر په وارخطایی کښې په تیښته روان دي. له دې کبله هغهٔ سمدستي خپلې ټولې پلټنې دکوتل په طرف وروړاندې کړې. او کاب Cobbe خپل یو بریګیډیر جنرل ته ئې حکم وکړو چې تهٔ ګس طرف ته او بریګیډیر جنرل تهیلوال دې په نیغو د طوري په کلي باندې وروړاندې شي او کهٔ چرې څهٔ کابلي فوځونه وړاندې په نظر راغلل نو په هغوي پسې دې جخت ورشي. د طوري کلي په خوا کښې د پیواړ کوتل د غرونو د سلسلې یوه سوکه دا شان پرته ده چې د پیواړ کوتل لار د هغې سوکې بالکل د زد لاندې ده. رابرټس کاب ته دا حکم ورکړے وهٔ چې په طوري کلي باندې د قبضې کولو نه پس بیا تهٔ په دې سوکه باندې د شا د طرف نه وروړاندې شه. کاب او تهیلوال د خپلو خپلو هدایتونو مطابق روان شول ولې د لرې لارې وهلو نه پس د کاب د دوؤ پلټنو نه لار خطا شوه او د تهیلوال فوځونو سره یو ځایے شول. کاب د کابلي فوځونو په تلاش کښې د طوري کلي په سهیل وګرځیدو را وګرځیدو ولې هیڅ پته ورته معلومه نشوه. له دې کبله هغه په تنګو تنګو کښې د طوري کلي ته واپس شو د یو څو قدمونو اخستو نه پس هغه د یوې ورې درې خلې ته ورسیدو. د دې درې په چارچاپیره غرونو باندې کابلي فوځونه په یو ډیر مستحکم او مضبوط ځایے باندې مورچه وو خو چې څهٔ وخت دکاب سرو کابلیان ولیدل نو پوهه شو چې ډیر خراب ځایے کښې راګیر شو. کاب فوراً د واپس کیدو اراده وکړه ولې څهٔ وخت چې د

واپسی حکم وشو او انګریزي فوځونه راوجاروتل نو کابلي فوځونه د وچتو سوکو نه راکوز شول او یو زبردست باړ ئ د کاب په سړو وچلولو. د دې نه پس یوه سخته جګړه وشوه او که چرې رابرټس پخپله سره د نورو فوځونو د کاب امداد ته سمدستي نهٔ وے رسیدلے نو یقیناً چې د هغهٔ سړو ته به سخت نقصان رسیدلے وے. بهرصورت کاب، تهیلوال او جنرل رابرټس پخپل مقصد کښې ناکام واپس شول او دا ئ یقین راغلو چې د سخت جنګ نه بغیر د پیواړ کوتل اخستل ناممکن دي.

په دې شپه جنرل رابرټس خپل کیمپ د طوري کلي په خوا کښې په یو داسې ځائے کښې ولګولو چې هغه د پیواړ د غرونو د یوے سوکې بالکل د زد د لاندې وهٔ. څهٔ وخت چې انګریزان په خپل کیمپ کښې خاطر جمع کښیناستل نو کابلي فوځونو یوه توپه په راښکو راښکو دې سوکې ته راوخیژوله او شلور بجې د ورځې ئ په فیرنګیانو ګوله باري شروع کړه. جنرل رابرټس فوراً په بل ځائے کښې د کیمپ د لګولو حکم وکړو. ولې وخت بیا ناوخته شوے وهٔ، ډیره زر تیارهٔ شوه او ټول فوځ په ډیرې بې ترتیبی سره د طوري کلي نه یو نیم میل بیرته په یو بل ځائے پړاؤ وکړو. کابلي فوځونو په شلور بجې د ورځې په انګریزي فوځ باندې په ګوله باری کولو کښې سخته بیوقوفي کړې وه کهٔ چرې هغوي لږ شان انتظار کړے وے او څهٔ وخت چې د فوځ اکثره حصه په خوب ورننوتې وے نو بیا د شپې هغوي عین د کیمپ په منځکښې د توپې ګولی غورځولې وے او دې سره ئ که چرې په مناسب مناسب مقامونو باندې د طوري کلي نه چارچاپیره د شپې مورچې نیولې وے نو په انګریزي کیمپ کښې به یو زوررور نقصان شوے وهٔ او د نیم نه به زیات تباه شوے وهٔ.

په نهٔ ویشتم نومبر جنرل رابرټس د پښتنو د توپو د زد نه لږ نور هم لرې د ګوبازان کلي خوا ته خپل کیمپ منتقل کړو او د هغې نه پس ئ په پیواړ کوتل باندې د باقاعده حملې کولو دپاره په لویه پیمانه فوځي ګشتونه شروع کړل په دې کښې نهٔ ویشتم او دیرشم نومبر تیر شول. د پښتنو د فوځ سالار کریم وهٔ او هغهٔ سره دوه بریګیډیران ګل محمد خان او عبدالعلي خان وو اګر چې د پیواړ کوتل د حفاظت دپاره په اول دسمبر د کابل نه قریباً درې زره سړي او اولس توپې راورسیدې ولې دا مورچه د یو سر نه تر بله سره پورې قریباً شلور سوه میله وړده وه په دې وجه د دې امدادي فوځ نه باوجود د دې ټولې مورچې حفاظت د دومره لږ فوځ دپاره یو ډیر ګران کار وهٔ. کریم خان سالار او د هغهٔ بریګیډیرانو په ډیر غور او فکر سره په مناسب مناسب ځایونو توپې او فوځي دستې ولګولې او ښهٔ په قابلیت ئ ټول انتظام پوره کړو په دې ځائے کښې د پیواړ کوتل د جنګ د واقعاتو په تفصیل بیانول نشي کیدے خو مختصره خبره دا ده چې په دویم دسمبر جنرل رابرټس په پیواړ کوتل باندې د دریو طرفو نه د حملې کولو اراده وکړه. تجویز دا وشو چې جنرل رابرټس به پخپله د فوځ

اصلي حصې سره د ګوبازان کلي نه په اول دسمبر په لس بجې د شپې روانيږي او په دويم دسمبر سحر وختي به خان پيوار کوتل قطب طرف ته سپين ګولۍ کوتل ته رسوي چې د پښتنو د فوځ ګسه غاړه ماته کړي. بل دا چې بريګيډير کاب به سره دخپلو فوځونو په دويم دسمبر سحر وختي د ګوبازان کلي نه روانيږي او د پيواړ د درې ويخ ته به خان رسوي او څهٔ وخت چې رڼا شي نو د کوتل په کنډو باندې به د مخامخ نه حمله کوي. دريم دا چې ميجر پامر پنځو سوؤ طوري سرو سره د پيواړ کوتل په سهيل طرف باندې حمله کوي. رابرټس دوه زره دوه سوه او درې شپيتهٔ سپاهيان او افسران او اتهٔ توپې واخستې او کاب يو زر او پنځوس سړي سره د پنځو توپو واخستل. رابرټس د ټولې شپې د مزل نه پس په دويم دسمبر د پښتنو د مورچې په چپ طرف ورروختو او د يو سخت بدست جنګ نه پس ئې د کابلي فوځونو نه درې مورچې واخستې. تر اوو بجو سحر پورې دا جنګ د سپين ګولۍ په کوتل باندې جاري وهٔ. او اخر د دې طرف نه ټول کابلي فوځونه پيواړ کوتل طرف ته وتښتيدل. رابرټس د هغوي په تعاقب کښې تر څهٔ فاصلې پورې وړاندې شو مګر لږ ساعت پس هغهٔ د غر په يوه داسې سوکه باندې ورروختو چې د هغې نه نور مخکښې د يو لوړے تنګي په سبب وړاندې تلل ناممکن وو. په دغه ځاے کښې د غرونو نه فيرنګيانو او کابلي فوځونو په يو بل باندې ډيرې ډزې وکړې او مضبوطه جګړه وشوه خو رابرټس د تنګي نه پورې نهٔ وتلو.

ديخوا نه په دويم دسمبر پنځهٔ بجې سحر ميجر پامر سره دخپلو طوري سپاهيانو او توپخانې د کابلي فوځ په ښي طرف د حملې کولو دپاره او کاب د مخامخ نه نمر ختو سره د حملې دپاره روان شول. هر کله چې دې دواړو حمله شروع کړه نو جنرل کاب په ګولۍ زخمي شو او د فوځ سالارې ئې کرنل ډريو ته وسپارله. په دې موقع هم فريقينو کښې تر ډير وخته پورې يو ډير زبردست جنګ د توپو او د ټوپکو وشو. دا جنګ لا هم هغه شان روان وهٔ چې د ډريو د فوځ نه يوه حصه بالکل اتفاق سره د غونډ او د کنډو په خوا کښې دا شان مخکښې لاړه چې د پيواړ کوتل قطب سر ته د رابرټس سپاهيانو سره يو ځاے شوه. او د کابلي فوځونو د سر دپاسه په يوه بله سوکه راوختهٔ. د هغه ځاے نه هغوي د کابلي فوځ د کيمپ په دا منځکښې ګوله باري شروع کړه. په دې باندې په ټول کابلي کيمپ کښې يو ګړ بړ پيدا شو . دې سره سم ډريو د مخامخ نه په کوتل باندې يوه زبردسته حمله وکړه. د کابلي فوځونو وارخطا شو هغوي دا خيال وکړو چې مونږه د څلور طرفو نه راګير شو او د واپس تلو لار مو بنده شوه. په دې سبب هغوي د پيواړ کوتل مورچه بالکل پريښوده او ټول سپاهيان د زبردست کلي په لاره باندې علي خيلو ته وتښتيدل.

افسوس دے چې د شير علي خان د فوځ افسران د هغه قابليت او زړورتيا خاوندان نهٔ وو چې د چا نه بغير د يو فوځ سپاهيان هم فتح نهٔ شي کولے. د پښتنو په سپاهيانو کښې خو د

جرأت او د جنگ کولو د جذبې څۀ کمے نۀ وۀ ولې افسران ئ سست او په زړۀ کمزوري وو. یوځل خو هغوي په اتویشتم نومبر د خپلې بیوقوفۍ او جلدۍ په سبب د انګریزانو د تباه کولو موقع د لاسه وغورځوله او بیا په دویم دسمبر هغوي صرف د سستۍ په سبب د فیرنګیانو په کیمپ باندې د یوې کامیابې حملې نادره موقع ضائع کړه. د امدادي فوځ رارسیدو سره د پښتنو سالار دا اراده وکړه چې دویم دسمبر به وروستي پهر کښې د فیرنګیانو په کیمپ باندې چپاؤ کوم. ولې ټولو افسرانو دا عذر پیش کړو چې سپاهیان ډیر ستړي دي له دې کبله هغۀ مجبوراً دا حمله ملتوي کړه کۀ چرې د سالار د تجویز مطابق په انګریزي فوځ باندې حمله شوے وے نو هغوي به یقیناً یو نامتو او زبردسته فتحه حاصله کړے وے په کوم وخت چې د دې حملې کیدل د پښتنو سالار تجویز کړي وو په هغه وخت به جنرل رابرټس سره د خپل فوځ د اصلي حصې د خپل منزل مقصود نه لا کافي لرې په لاره روان وۀ او په انګریزي کیمپ کښې به ډیر لږ خلق د مقابلې دپاره پاتې وو. نو کۀ چرې د پښتنو فوځ په ګوبازانو باندې د وچتووچتو غونډو نه په وروستي پهر کښې ګوله باري کړے وے او بیا ئ سمدستي خپل نیم فوځ د حملې دپاره راکوز کړے وے نو انګریزي کیمپ به ئ یقیناً قبضه کړے وے. او بیا هغوي د جنرل رابرټس فوځ هم د شا نه او هم سپین ګولئ کوتل د طرف نه مخامخ د خپلو فوځونو په منځکښې راګیر کړے وۀ ولې جنرل رابرټس د پښتنو فوځونو په بې علمۍ کښې د پیواړ کوتل د قطب سر نه راووتو او د چارچاپیره نه ئ د پښتنو کیمپ راګیر کړو. د جنرل رابرټس په فوځ کښې هم د پیښور د پښتنو یوه پلټن دا شان وه چې هغوي دا غوښتل چې په څۀ شان د افغانستان فوځونو ته د رابرټس د فوځ د آمد اطلاع او د هغۀ د مجوزه حملې خبر ورکړو. چنانچه هرکله چې رابرټس د خپل فوځ سره د وړومبي او دویم دسمبر په شپه د سپین ګولئ کوتل په طرف ډیر په پټه روان وۀ نو د پښتنو د دې پلټنې دوؤ سپاهیانو د انګریزي فوځ د نقل و حرکت د ښکاره کولو دپاره پرله پسې دوه ډزې وکړې ولې د افغانستان د فوځونو افسرانو د دې ډزو هیڅ تحقیقات ونۀ کړل او نۀ د هغې نه څۀ فائده وچته کړه او دغه شان رابرټس په سپین ګولئ کوتل باندې په ناساپي حملو کښې کامیاب شو. په دې دوؤ پیښورو پښتنو کښې چې کوم کس وړومبے ډز کړے وۀ رابرټس د ټول فوځ د وړاندې پانسي کړو د دې سپاهي نوم حضرت شاه وۀ. دویم کس چې چا وروستې ډز کړے وۀ د هغۀ نوم میرباز وۀ. هغۀ دا عذر پیش کړو چې د وړمبي ډز د ویرې او بغیر د بد نیتۍ نه ډز کړے دے، په دې وجه هغۀ ته دوه کاله قید سخت سزا ورکړې شوه. رضا شاه انډیا آفیسر چې د حضرت شاه په طرف دارۍ کښې ودریدلے وۀ او د هغۀ د بچ کولو کوشش ئ کولو هغۀ له اووۀ کاله په تورو اوبو کښې د قید سزا ورکړې شوه. د دې نه علاوه نورو نولسو تنو سپاهیانو شوارلس کاله په تورو اوبو کښې د قید سزا وخوړله.

په پيواړ کوتل کښې چې رابرټس خپله مورچه مضبوطه کړه نو په شپږم دسمبر هغه د فوځ يوې دستې سره د شتر گردن په طرف د فوځي گشت دپاره روان شو. په نهم هغهٔ د ټول شترگردن د درې ملاحظه وکړه. ځکه چې په خواؤشا کښې د افغانستان فوځونه په نظر نهٔ راتلل د هغه ځاے نه هغه په لسم دسمبر علي خيلو ته واپس شو او د هغه ځاے نه د ځپري او د منجيار په لاره دريائے کرم ته راکوز شو. د منجيار په لاره د هغهٔ د باربرداري په ځاروو او د هغوي د محافظې دستې په سپاهيانو د منګلو د قبيلې خلقو يوه سخته حمله وکړه. او دوه انګريزي افسران او څهٔ سپاهيان ئې مړهٔ کړل. د هغه ځاے نه رابرټس کرمې ته راورسيدو. په دې ځاے کښې هغهٔ يو لوے دربار وکړو او په هغې کښې ئې د هغه علاقې ټول ملکان او خانان راجمع کړل چې په کومه کښې انګريزي فوځونه تير شوي وو. دې خانانو او ملکانو ته هغهٔ دا اعلان وکړو چې د ټل نه تر شترگردن پورې ټول ملک حکومت انګريزي مستقل طور سره په خپل سلطنت کښې شامل کړو او امير کابل ته به د دې نه پس د دې علاقې د خواوشا خودمختار قبائلو سره د دخل مداخلت کولو هيڅ اختيار حاصل نهٔ وي. د دې اعلان نه پس هغهٔ بيا د انګريزي طرز حکومت تعريفونه هغوي ته وکړل او ورته ئې ووئيل چې انګريزي حکومت به ستاسو په مذهبي معاملاتو (يعنې مونځ، روژه او د ځناورو قرباني، حج وغيره) کښې او رسمونو رواجونو کښې هيڅ دخل نهٔ ورکوي مګر دې سره به مليانو ته په سياسي امورو باندې د وعظ کولو يا د حکومت خلاف د تقريرونو کولو اجازت نهٔ وي. د رابرټس دا اعلان چې د ټل نه تر شترگردن پورې ټول ملک به پس د دې نه په انګريزي علاقه کښې شامل گنلے شي د لارډ ليټن د دې اعلان بالکل مخالف وهٔ چې د افغانستان د خلقو د خودمختاری به انګريزي حکومت قدر کوي او د هغوي په معاملاتو کښې به نهٔ پخپله دخل ورکوي او نهٔ به بل يو بيروني حکومت ددې قسم دخل ورکولو ته پريږدي. او دا چې د دې جنګ ټوله ذمه واري صرف په شير علي خان ده نه چې د هغهٔ په رعيت. د لارډ ليټن د دې اعلان په موجودګۍ کښې د رابرټس د پښتنو د پلار نيکهٔ ملک لاندې کول او بغير د هغوي د تپوس نه د هغوي په پدري ملک باندې قبضه کول د هغوي نه ازادي او خودمختاري اخستل نهٔ وو نور څهٔ وو؟ په حقيقت کښې دا اعلان رابرټس د ځان نه نهٔ وهٔ کړے بلکې د لارډ ليټن په وينا او صلاح ئې کړے وهٔ ولې لارډ ليټن چې کوم اعلان په يويشتم نومبر کړے وهٔ هغه هغهٔ صرف د افغانستان خلقو له د دوکې ورکولو په خاطر او د امير شير علي خان او د هغهٔ د قوم په خلقو کښې د فرق پيدا کولو په غرض کړے وهٔ. ګني خو په حقيقت کښې د حکومت هند د دې لام نه غرض د افغانستان او د ازاد پښتنو خودمختاري تباه کول وو او د هغوي نه ملک اخستل وو نه چې يوائې امير شير علي خان ته سزا ورکول وو.

کرمې ته د واپس راتلو نه درې هفتې پس رابرټس په خوست باندې د حملې کولو

او په انګریزي سلطنت کښې د دې علاقې مستقل طور سره د شاملولو دپاره تیاري شروع کړه .ددې دپاره هغهٔ دوه زره او دوه اتیا سپاهیان،اتهٔ توپې ،پنځلس سوه او نهٔ دیرش اوښان،پنځهٔ سوه پینځهٔ شپیتهٔ قچرې د حاضر پیر په مقام رایوځائے کړل.دا فوځ په دویمه جنوری 1879ء په نهٔ بجې سحر روان شو او په شپږم متون ته ورسیدو.په دې ورځو کښې د امیر شیر علي خان د طرف نه د خوست ګورنر یو بې ایمان او بددیانت سړے چې محمد اکرم نوم ئ وهٔ هغهٔ د رابرټس د روانیدو نه وړومبې به کرمه کښې هغهٔ ته خبر ورکړو چې زهٔ د خوست ټوله علاقه فیرنګیانو ته بې جنګ کولو حواله کولو ته تیار یم. هر کله چې رابرټس د خوست په لوري پیش قدمي شروع کړه نو هغه بیا په خپله د خوبي په مقام باندې رابرټس او د هغهٔ پولیټیکل افسر کرنل وائلډ فیلډ له راغلو او هغوي سره ئ د خوست بې ډزه ډوزه او بې مقابلې د حواله کولو اقرار وکړو چنانچه چې څهٔ وخت چې د رابرټس فوځ متون ته راورسیدو نو دې محمد اکرم د متون د قلا کُنجیاني باقاعده طور رابرټس ته حواله کړې.

د خوست د علاقې نه چارچاپیره وچت وچت غرونه پراتهٔ دي چې په هغې کښې د پښتنو زیږ بهادر او توریالي قومونه لکه منګل، درویش خیل، وزیر او جدران اباد دي. اکرم بې ایمان به رابرټس ته د دې قبیلو په سر د هغوي د نقل و حرکت او د هغوي د رویې متعلق مخبري هم کوله ځکه چې دې ازاد قومونو رابرټس سره د جنګ کولو او هغه د خپل ملک نه د شړلو پخه اراده کړې وه. چنانچه څهٔ وخت چې رابرټس د متون په خوا کښې د خپل کیمپ په لګولو کښې مصروف وهٔ نو اکرم هغهٔ ته سوال جواب راولیږلو چې نن شپه به د تیرې نیمې نه پس منګل قوم په ډیر شمار کښې په انګریزي کیمپ باندې چپاؤ کوي د دې خبر په راتلو سره رابرټس د خواوشا کلو ټول ملکان راوبلل او په ډیرې سختۍ سره ئ ورته ووئیل چې کهٔ چرې ستاسو په کلو کښې د غرونو یو سړے هم بیاموندې شو نو زهٔ به درله سخته سزا درکړم.

په دې ځائے کښې دا وئیل مناسب دي چې د خوست د سمې خلق ډیر امن خوښې دي او چپ چاپ خلق دي او کهٔ چرې هغوي سره څوک سختي ونهٔ کړي نو هغوي د صلحې او د امن ژوند تیرول ډیر غوره کوي له دې کبله هر کله چې هغوي د جنرل رابرټس دا وینا واوریده نو هغوي په ځان ویریدل او زر زر خپلو کلو ته لاړل چې کهٔ چرې څهٔ منګل یا نور د غرونو قومونه په انګریزي فوځ باندې د چپاؤ دپاره راکوز شوي وي نو چې هغوي د خپلو کلو نه وباسي. نیمه شپه دا ملکان د رابرټس کیمپ ته واپس راغلل او هغهٔ ته ئ ووئیل چې منګلو مونږ سره لوظ کړے دے چې مونږ به درنګ ساعت له د خوست د درې نه وځو او بیا د نور اعتبار دپاره دې ملکانو خپل ځانونه رابرټس ته په طور د یرغمال حواله کړل. په سبا له یعنې په اوومه جنوری رابرټس بیا د خواوشا ملکان چارچاپیره غرونو ته واستول چې د منګلو په

حال باندې خان خبر کړې لږ ساعت پس هغوي د خپلې ويرې نه خبر راوړو چې بيشماره منګل د غرونو نه راکوز شوي دي او څهٔ د خوست په کلو کښې د انګريزي کيمپ نه چارچاپيره او څهٔ په خوا وشا غرونو کښې د چپاؤ دپاره راجمع شوي دي. رابرټس سمدستي څهٔ فوځونه خو غرونو ته په دې منګلو پسې واستول او څهٔ ئې د کيمپ د حفاظت دپاره پريښودل. ټوله ورځ د منګل غازيانو او فيرنګيانو په منځکښې هم د کيمپ په خوا کښې او هم په غرونو کښې ډيره زوروره جګړه وشوه. په دې حمله کښې منګلو د فيرنګيانو نه د باربرداری څهٔ اوښان هم بوتلل او څهٔ سړي ئې ترينه هم نقصان کړل. د هغوي خپل سړي هم ډير تاوان شول ولې ټوله ورځ هغوي ډيره په نره فيرنګيانو سره جګړه وکړه. په دې ټول جنګ کښې غدار محمد اکرم سره د خپلو دوؤ سوؤ سپاهيانو د قلا د سر نه د دې جګړې تماشه کوله. هرکله چې د يو قوم په مشرانو کښې دا شان يو بې ايمانه او نمک حرام سړے هم موجود وي نو د هغې قوم دپاره د ذلت او غلامۍ نه خلاصيدل ناممکن دي.

په دغه ورځ چونکې د منګل غازيانو يو ټولے د خوست د درې په ځنې ځنې کلو کښې هم راننوتے وؤ او د هغه ځايونو نه ئې په فيرنګيانو باندې ډزې کړې وے په دې وجه رابرټس د خپل زور ځوئ مطابق غير مسلح ابادۍ ته د فيرنګيانو د زور ښودلو دپاره حکم وکړو چې د انګريزي کيمپ نه نمرخاتهٔ او سهيل طرف ته هرڅومره کلي چې پراتهٔ دي هغه دې ټول تالا کړې شي چنانچه يولس کلي په دې طريقه د رابرټس په حکم تباه کړې شول او څهٔ مال و اسباب چې په دې کلو کښې بياموندې شو هغه سپاهيانو لوټ کړو. وړومبے ذکر شوے دے چې د خوست د درې خلق بالکل غير جنګجو او امن خوښي خلق دے هغوي پخپله هميش د منګل، وزير او د جدران د لاسه تنګ وي او د امير صاحب فوځونه هغوي د دې قبائلو د دست برد نه ساتي. په دې مؤقع د غرونو دا قومونه د خوست په کلو کښې په زور راننوتي وو او د هغوي د راتلو اطلاع هم په هغه وخت باندې ملکانو رابرټس ته ورکړې وه. د دې نه زياتي وس د هغوي په دې کسانو نهٔ کيدلو ولې بيا هم رابرټس هغوي له دغه شان سخته سزا ورکړه چې د مهذب قوم د يو فرد دپاره ډيره نامناسبه وه........ په دې ځاے کښې دا هم ياد ساتل پکار دي چې دا د ژمي ورځې وے او د دې کلو په سيزلو کښې رابرټس تش سړو له سزا ور نهٔ کړه بلکې بې ګناه ښځې او واړهٔ ماشومان ئې هم په سخته يخنۍ کښې او واؤرو کښې بې خوراکه بې کوره او در په در کړل. رابرټس خپل حکومت ته د دې واقعې په جواز کښې دا وليکل چې " اګرچې دا سزا ډيره سنګينه وه ولې کهٔ دا شان سخت سبق د خوست خلقو ته نهٔ وے ورکړې شوے نو غالباً چې د فيرنګيانو برخلاف به هغوي بيا په لوے جمعيت کښې مقابلې ته راوتي وو ولې اوس اکثر ملکانو زمونږ اطاعت منظور کړو او نور هم د اطاعت د اظهار دپاره اراده کوي." دغه سزا وه د خوست د خلقو د کمزورۍ او فيرنګيانو

سره د تعاون.

د دې نه پس تر درویشتمه جنوری پورې منګلو او د خوست نورو ازادو قبائلو بیا څۀ منظمه حمله په انګریزي کیمپ ونۀ کړه او په دې سبب رابرټس دومره مطمئن شو چې هغۀ د خوست نه واپس کرمې ته د تلو اراده وکړه. چنانچه هغۀ محمد اکرم د خوست سابق ګورنر او د هغۀ سرې د قلا نه وویستل او په خیمو کښې ئې دیره کړل او قلا ئې د خوراک د سامان او د ګوله بارود نه ډکه کړه. د دې نه پس هغۀ میجر کالس د قلا کمانډنټ او کرستي ئې د هغۀ پولیټیکل افسر مقرر کړو او هغوي سره ئې د درځ یوه دسته پریښوده او په دیارلسمه جنوری اتۀ بجې سحر هغۀ باقي فوځ خان سره واخستو او د خوست نه د چارچاپیره درو سروے ئې شروع کړه. په نولسمه جنوری څۀ وخت چې د رابرټس افسران د خوست د سهیل د درو په سروے کښې مصروف وو نو د یوې وچتې سوکې نه د هغۀ یو افسر ته د بنو نه د شیشې په ذریعه خبر وشو چې د وزیرو او مسعودو یو شریک لښکر په انګریزي علاقه حمله کړې ده او د ټانک ښار ئې سیزلے دے. دې خبر سره سم رابرټس ته دا اطلاع هم ورسیده چې د دوړو په علاقه کښې چې د خوست سهیل ته پرته ده او په هغې کښې اکثر وزیر اباد دي یو ملا د جهاد وعظ شروع کړے دے. د دې خبرونو نه علاوه هغۀ ته دا اطلاع هم راورسیده چې منګلو او جاجیانو په پیواړ کوتل باندې د حملې کولو اراده کړې ده. دې ټولو خبرونو د جنرل رابرټس په زړۀ کښې یو خوف او هیبت پیدا کړو. او ورسره دا ویره پیدا شوه چې هسې نه چې د خوست په لاندې کولو کښې د فیرنګیانو نه د کرمې او د شتر ګردن علاقه د لاسه وځي. په دې منځ کښې یو بل خبر هغۀ له راغے چې د هغۀ د علي خیلو په پولیټیکل افسر باندې منګلو چپاؤ کړے دے او اګرچې هغه في الحال د هغوي په پشا کولو کښې کامیاب شوے دے مګر په منګلو او نورو ازاد قبائلو کښې جوش ورځ تروورځ زیاتیږي او قریب ده چې هغوي د کرمې د علاقې څلور واړه طرف ته په فیرنګیانو چپاؤ وکړي. سره د دې خوفناک خبرونو رابرټس د خوست په پریښودو بالکل رضا نۀ وۀ او د هغۀ د زړۀ منشا دا وه چې خوست دې مستقل طور سره په انګریزي حکومت کښې شامل کړې شي مګر په درویشتمه جنوری هغۀ ته یو بل خبر راورسیدو چې د خوست نه هم چارچاپیره د غرونو قبائل بیا رایوځاے شوي دي او په انګریزي کیمپ باندې د چپاؤ کولو اراده لري. چنانچه هغۀ فوراً خپل کیمپ نه چاپیره خندقونه وکنستل او د اوښانو د کتو نه ئې مورچې جوړې کړې په سبا هغۀ خپل افسران د منګلو خبر راوړو له هر طرف ته ولیږل. هغوي رپورټ راوړو چې منګل په ډیر شمار کښې په نظر رانغلل مګر د خوست د غرونو د خوا د خلقو رویه او نیت فیرنګیانو ته بالکل ښۀ نۀ دے.

اګرچې د خوست د لاندې کولو حکم هغۀ ته انګریزي حکومت هند کړے وۀ ولې د

دې حملې په کولو کښې هغهٔ د حد نه زياته تندي کړې وه له دې کبله هغه خپلې ناکاميابۍ منلو ته تيار نهٔ وهٔ مګر اوس هغهٔ ته دا معلومه شوه چې زهٔ د منګلو او د پښتنو د نورو قومونو د لاسه په خوست کښې په ارام نشم کښيناستې او يا خو به کرمه او شترګردن پريږدم او يا به د خوست نه ګوتې وباسم. چونکې هغه په دې دواړو خبرو کښې يوه هم نهٔ غوښتله له دې کبله هغهٔ يو عجيبه او نوې تجويز په خوست باندې د انګريزي قبضې ساتلو دپاره راوويستو. هغهٔ شهزاده سلطان جان چې د اصله سدوزے وهٔ او په دې ورځو کښې د فيرنګيانو نوکر وهٔ په دويشتمه جنورۍ خوست ته راوغوښتو او دا اراده ئ وکړه چې شهزاده سلطان جان سره د طوري قبيلې يو څو سوه سپاهيان په خوست کښې پريږدم او هغه به د فيرنګيانو د طرف نه د دې علاقې ګورنر کړم. او پخپله به سره د ټول انګريزي فوځ د کرمې او د شترګردن د حفاظت دپاره واپس لاړ شم. چنانچه په پنځويشتمه جنورۍ هغهٔ د خوست د علاقې ټول ملکان د متون په مقام بيا يو دربار کښې راجمع کړل او هغوي ته ئ يو ځل بيا دا دروغ بياني وکړه چې زمونږ جګړه يواځې امير سره ده او د افغانستان خلقو سره زمونږ هيڅ ورانه نشته او هغوي سره د فيرنګيانو هميش جوړه وه او اوس هم جوړه ده. پس د دې نه هغهٔ د انګريزانو د حکومت د ايماندارۍ تعريفونه وکړل او ورته ئ ووئيل چې زهٔ د حکومت انګريزي د طرف نه شهزاده سلطان جان د خوست حاکم مقرروم او کهٔ چرې تاسو په هغهٔ څهٔ حمله وکړه او يا تاسو د هغهٔ حکم ونهٔ منلو نو زهٔ به بيا سره د خپله فوځه راشم او بيا به په زور په تاسو باندې د فيرنګيانو حکومت قائم کړم.

د رابرټس په دې رنګ د خپل حکومت د ايماندارۍ تعريفونه کول او خلقو ته دا وينا کول چې د فيرنګيانو جګړه يواځې امير سره وه نه چې د هغهٔ رعيت سره، د خوست خلقو ته يوه عجيبه غوندې خبره ښکاره شوه د هغوي د زړونو نه د خپلو کلو سوزيدل او د ټول مال دولت تالا کيدل او په هغوي باندې د انګريزي فوځونو ناساپې راختل لا هير شوي نهٔ وو. ولې په دې موقع هغوي خپل خفګان هغهٔ ته نشو ښکاره کولے. د هغوي نه چارچاپيره په وسله پُور فوځونه ولاړ وو له دې کبله هغوي چپ پاتې شول. د هغوي د خاموشۍ نه هغهٔ دا نتيجه وويسته چې بالاخر زهٔ په خپله ارادهٔ کښې کامياب شوم د دربار نه پس هغهٔ لږې لږې روپۍ او شل ګډان هم هغوي ته د روټۍ دپاره ورکړل. د پلټنې باجې ئ هم ورته ووهلې او د روټۍ نه پس دا ملکان رخصت شول.

په شپږ ويشتمه جنورۍ رابرټس خپل فوځ ته کرمې ته د واپس تلو حکم ورکړو، فوځونه هم د دې مصيبت نه په دا شان په اسانه خلاصيدو باندې ډير خوشحاله شول او خپلې تيارۍ ئ شروع کړې ولې هر کله چې د شهزاده سلطان جان د محافظې دستې طوري د انګريزي فوځ د واپس تلو د ارادې نه خبر شو نو هغوي ډير غمژن شول او هر کله چې

انګریزي فوځونه په روانیدو کښې شول نو هغوي هم د وروستو پاتې کیدو نه صفا انکار وکړو هغوي خو ښهٔ خبر وو چې دیخوا د فیرنګیانو رخصتیدل دي او بل خوا ته به منګل په مونږ باندې چپاونه شروع کړي او سره د سلطان به ټول قتل شو. اوس رابرټس او د هغهٔ ماتحت افسران د طوري سپاهیانو ډیرې خوشامندې راواخستې او ورسره ئ د لویو لویو تنخواه ګانو اقرارونه وکړل او اخر د روپو په لالچ او د ډیرو خوشامندو په سبب هغوي په پاتې کیدو باندې رضا شول.

په اتویشتمه جنورۍ رابرټس سره د انګریزي فوځونو د خوست نه حاضر پیر طرف ته روان شو او وړومبے پړاؤ ئ د متون نه دولس میله لرې د صبري کلي په خوا کښې وکړو په دې کلي کښې هغهٔ په یو کم دیرشم جنورۍ د دمې خوړلو او د دې علاقې د فوځې ملاحظې دپاره پاتې شو. لا رابرټس په دې ځاے کښې وهٔ چې د سلطان جان سړے هغهٔ له د امداد د غوښتو دپاره راغلو. واقعه دا پیښه شوه چې د فیرنګیانو د متون نه د رخصتیدو سره سم قریباً لس زره منګل په یو ځاے د متون د قلا نه چاپیره شول او کهٔ چرې رابرټس دومره نزدې د مدد ورکولو دپاره موجود نهٔ وے نو دا یقیني خبره ده چې سلطان جان به سره د خپلو طوري سپاهیانو بالکل تباه شوے وهٔ. د سلطان جان د قاصد د رارسیدو په سبا سحر رابرټس سره د خپل فوځ د یوې لویې حصې بیا د خوست په لورې روان شو او نهٔ نیمې بجې د ورځې متون ته راورسیدو. د انګریزي فوځ په آمد باندې منګل او جاجیان د قلا د خواوشا نه وروستو شول او د غرونو په خوا کښې ئ د مقابلې دپاره مضبوطې مورچې ونیولې مګر د رابرټس نیت د جنګ نهٔ وهٔ بلکې د سلطان جان او د طوري سپاهیانو راخلاصول وو. چنانچه هغهٔ وړومبے خو د قلا ځومره غله چې په اوښانو بار کولے شوه هغه هومره ئ بار کړه او باقي غله ئ د خوا په یو ډنډ کښې وغورځوله. په قلا کښې چې ځومره ګوله بارود جمع وو هغه ئ والوځول او قلا ته ئ اور ورته کړو. د دې نه پس هغه قریباً پنځهٔ بجې ماښام صبري ته راورسیدو او په هغه ځاے کښې پړاو شو. د هغه ځاے نه هغه حاضر پیر ته راغلو او د فوځ بیله بیله دسته ئ په بیل بیل کار مقرر کړه. دغه شان رابرټس ناکامیاب د خوست نه واپس شو او د منګلو ، جاجیانو، وزیرو او جدرانو غازیانو د برکته د خوست علاقه په انګریزي حکومت کښې د شاملیدو نه پاتې شوه.

# اوولسم باب

په یویشتم نومبر 1878ء د جنرل بډولف د کوئټې د غاړې په افغانستان چپاؤ، افغانستان ته د ستېورټ جنرل د سالاری لاندې حمله، په اتم جنوری 1879ء د جنرل ستېورټ فوځي مارچ په ښار دننه، او په قندهار بې ډزه بې ډوزه د فیرنګیانو قبضه، د یو ننګیالي پښتون په منځ بازار کښې په ستېورټ حمله، د ستېورټ بچ کیدل، او د دغه ننګیالي پښتون بر سر راه پانسي، نواب غلام حسین خان د قندهار ګورنر په پنځلسمه جنوری په قلات غلزے چپاؤ او قبضه، د خوراک د سختی په وجه قندهار ته واپسي، د جنرل بډولف په ګرشک قبضه او واپسي.

په یویشتم نومبر 1878ء د میجر جنرل بډولف فوځونه هم د کوئټې د طرف نه په افغانستان کښې وردننه شول او د ډیرو وړدو مزلونو او مشکلاتو زغملو نه پس ئې د خوجک کوتل په ټوله دره باندې قبضه وکړه په چارچاپیره ملک کښې د افغانستان د فوځونو نام و نشان هم نۀ وۀ مګر کۀ لږه شان مقابله هم په سختو غرونو کښې د یو منظم فوځ په ذریعه د جنرل بډولف د پیش قدمی شوې وے نو د هغۀ د فوځ یوه لویه حصه به ضائع شوې وه مګر انګریزي فوځونو ته په مخکښې تلو کښې د خوراک او د باربرداری د څاروو د نشت دومره مشکلات وو چې بغیر د جنګ نه هم په دې حالاتو کښې د هغوي دپاره په جلدۍ په قندهار ورتلل یو ډیر ګران کار وۀ. ولې د دې مشکلاتو سره کۀ د جنګ سختی هم یو ځاے شوے وے نو د بډولف د فوځ حالت به د بیانولو قابل نۀ وۀ. دغه شان د سر ډانلډ ستېورټ فوځونه هم په ډیر تکلیف د کوئټې په طرف په لاره روان وو د ملتان نه تر کوئټې او د کوئټې نه په مخکښې د دومره لوے لښکر دپاره روزانه خوراک رسول د ریلونو په غیر موجودګی کښې څۀ اسان کار نۀ وۀ. زرګونه اوښان او د باربرداری نور څاروي د ستومانی او د لارې د مشکلاتو په سبب هلاک شول. او په سپاهیانو کښې هم ډیر خلق بیکاره شول اخر د ډیر تکلیف او مصیبت نه پس دا فوځونه هم راورسیدل . ستېورټ د اماني فوځ سالاري پخپل لاس کښې واخستله دا ټول فوځ هغۀ په دوؤ حصو کښې تقسیم کړو. د یوې حصې حکم ئې په خپل لاس کښې وساتلو او د بلې ئې بډولف له ورکړو. او په دوؤ بیلو بیلو لارو باندې ئې د قندهار په لوري پیشقدمي شروع کړه.

په یودیرشم دسمبر 1878ء د ستېورټ فوځ په ګلستان کاریز او د بډولف فوځ په چمن کښې راجمع شو او په اول جنوری 1879ء د دې بیل بیل فوځ هراولونه د تخت پُل په طرف چې د قندهار نه دوه دیرش میله دیخوا دے روان شول. تجویز دا وۀ چې دا دواړه فوځونه به د تګ راتګ د اسانتیا دپاره په دوؤ بیلو بیلو لارو ورانديې ځي او بیا به د تخت پُل درې سره . اوځاے کیږي. په څلورمه جنورۍ اول ځل د امیر صاحب یو څو . وارۀ د تخت

پُل د درې نه دېخوا ولېدے شول او معلومېدل چې د دې درې د خلې د حفاظت دپاره مقرر شوي دي. د انګرېزي فوځ د هراول او د دې سورو په منځکښې څۀ معمولي شان جګړه وشوه مګر دا سوارۀ د انګرېزي سپاهيانو په مقابله کښې ډېر کم وو چنانچه هغوي په ډېره اسانه پنسپا شول او فيرنګيان د تخت پُل په دره باندې ورننوتل. په شپږمه جنورۍ د بډولف او د ستهورټ فوځونه د عبدالرحمٰن په مقام يو ځائے شول او په قندهار باندې ئې پېش قدمۍ دپاره تيارې وکړې. په اوومه جنورۍ دا ټول فوځ خوشاب ته روان شو د خوشاب په لاره کښې د قندهار د ښار نه يو ټولے انګرېزي سپه سالار له د اطاعت د قبلولو دپاره راغلو. دې وفد سرډانلډ ستهورټ ته خبر ورکړو چې سردار محمد افضل خان د قندهار ګورنر سره د ډوؤ سوؤ سپاهيانو هرات ته وتښتېدو او کوم سپاهيان چې د تخت پُل نه راخلاص شوي وو هغوي خپلو خپلو کلو ته وتښتېدل له دې کبله مونږ بې مقابلې د فيرنګيانو حکومت منلو ته تيار يُو. ستهورټ په عام خلقو باندې د رعب اچولو دپاره سمدستي فيصله وکړه چې په قندهار کښې سره د فوځي نمائشونو سبا له داخلېږم. چنانچه په اتم تاريخ سپه سالار او د فوځ ټول جرنيلان په يو لوئے جلوس کښې سره د توپخانې او رسالې او د پياده فوځونو په يو ډېر شان سره د شکارپور په دروازه ورننوتل او په کابلی دروازه باندې بيا ووتل. په دې جلوس کښې د انګرېزي فوځ نه يو ځل دا شان لار خطا شوه چې ټول فوځ په ښار کښې دننه بند شو او د وتو رؤ ئې بيا نۀ موندو اخر د ډېر ګړ بړنه پس ټولو فوځونو مخونه وجاريستل او د ډېرې بې رونقۍ نه پس د ماښام په تيارۀ کښې د ښار نه په وتو کښې کامياب شول. کۀ چرې په دې حالت کښې هم د کابلي فوځ نه چا په ښار دننه په دې فوځ حمله کړې وے نو دا يقين دے چې د ستهورټ ټول فوځ به په تورو شوے وۀ او د خلاصي لار به ئې هم نۀ وه بيامونده. په ښار دننه د انګرېزي فوځ رانوتو سره ټولو دکاندارانو خپل دکانونه فوراً بند کړل او دې پردو سپاهيانو او افسرانو ته ئې په بد نظر کتل. د هغوي د زړۀ په حال او د احساساتو نه خدائے خبر وۀ. د انګرېزانو د فوځي قبضې ياد لا د هغوي په زړونو کښې تازه وۀ مګر چونکې کابلي فوځونو د هغوي د حفاظت کولو د فرائضو نه تېښته وکړه او په هغوي کښې پخپله د دومره لويو توپو او د دومره منظم او عظيم الشان فوځ د مقابلې طاقت نۀ وۀ له دې کبله هغوي چپ پاتې شول او په خپلو زړونو ئې لوېې ګټې کښېښودې.

په نهمه جنورۍ سحر وختي ستهورټ د قندهار په ټولو دروازو باندې ګوره او هندوستاني سپاهيان ولګول او د فوځ يوه دسته ئې د قلا نه بهر په چوک کښې ديره کړه. هم په دغه ورځ څۀ وخت چې يو فوځي افسر ميجر سينټ جان په اس سور نواب غلام حسين خان سره په بازار کښې روان وۀ نو د ملک يو تنګيالي ناساپه د هغۀ د اس واګې راتينګې کړې او د ټوپک ډزې ئې پرې وکړو مګر سينټ جان ونۀ لګېدو او د نواب غلام حسين خان په

امداد سره د ملک دا ننګیالے ګرفتار شو او هم په دغه ځاے د عامو خلقو په مخکښې پانسي شو. په یو بل ځاے کښې یو بل غازي لفټیننټ ولس د توپخانې یو افسر په پیش قبضې مړ کړو او څهٔ وخت چې نورو سپاهیانو او یو بل افسر د هغهٔ د ګرفتارولو کوشش کولو نو هغهٔ درې سپاهیان نور مړهٔ کړل او هغه افسر ئ ژوبل کړو. د دې نه پس هغهٔ یو بل عهده دار مړ کړو.

په ښار کښې دننه د فوځي انتظام کولو نه پس سټوورټ نواب غلام حسین خان د قندهار سول ګورنر مقرر کړو او میجر سینټ جان ئ د هغهٔ پولیټیکل افسر کړو. د نواب غلام حسین خان تقرر هغهٔ صرف د قندهار د خلقو د خوشحالولو دپاره کړې وه ځکه چې په نوم باندې غلام حسین خان هم مسلمان وهٔ او د قندهار ابادي هم مسلمانه وه. د دې نه پس هغهٔ په قلات غلزي باندې د وړاندې کیدو تیاری وکړې. په پنځلسمه جنوری هغهٔ ځان سره څلور زره یو سل او دوه اتیا تنه سپاهیان او افسران، پنځهٔ زره یو سل او نولس ملاتړ ملازمان، یو زر پنځهٔ سوه څلور شپیتهٔ اسونه، اتهٔ اویا غویان او څلور زره څلور سوه او نهه دیرش د باربرداری نور څاروي روان کړل او د ډیر سخت تکلیف نه پس په دویشتمه جنوری هغهٔ قلات غلزئ ته ورسیدو. د قلات غلزئ نه هم د امیر صاحب فوځونه د انګریزي فوځ د آمد نه وړومبے تښتیدلي وو او په دې سبب انګریزي فوځونه بې مقابلې په قلا ورننوتل. په قلات غلزئ کښې انګریزي فوځونه یوولس ورځې پاتې شول ولې په دې لږو ورځو کښې هغوي ته د یخنی او د خوراک د کمي په سبب بیشانه ډیر تکلیف وشو. اګرچې سټوورټ او د هغهٔ افسرانو به د چارچاپیره علاقې نه غله په زور راوړه ولې بیا هم د هغهٔ د فوځ اکثر حصه به د لوږې نه په ډیرو تکلیف کښې وه او په دې وجه د هغوي صحت ډیر خراب شو. اخر هم د دې مشکلاتو په سبب حکومت هند هغهٔ ته حکم وکړو چې خپل فوځونه واپس قندهار ته بوځه. چنانچه په دویمه فروری هغه واپس شو ولې په لاره په هغهٔ باندې واوړې او بارانونهووریدل او بیشماره اوښان او د باربرداری څناور ترینه مړهٔ شول. اخر د ناقابل بیان مصیبتونو نه پس په اتویشتمه فروری هغه قندهار ته واپس ورسیدو. قندهار ته چې هغه راورسیدو نو ورته معلومه شوه چې د جنوری په اخر اخر کښې د پښتنو یو څو غازیان د سنتریانو په بې علمی کښې ښار ته رانوتي وو او د توپخانې د سپاهیانو په کیمپ باندې ئ حمله کړې وه. دې سپاهیانو نه وار پار خطا شو او د سنګینونو د استعمال په ځاے ئ په ټوپکو دا شان وارخطایی کښې ډزې وکړې چې خپل ډیر ملګري ئ وویشتل. د قلات غلزئ په دې پیشقدمی کښې د سټوورټ د فوځ نه چې څومره سپاهیان او ملاتړ د یخنی او د بیمارو په سبب مړهٔ شوي وو د هغې شمار خو هډو چا ښودلے نهٔ دے ولې د دې یوې خبرې نه د هغه نقصان څهٔ نا څهٔ اندازه لګیدے شي چې څهٔ وخت یو څو انګریزي افسرانو صرف د خپل علم د راوستو دپاره د مړو اوښانو لاشونه وشمارل نو په درې نیمو زرو کښې د نولسو سوؤ او څلیریشت اوښانو پنجرې

ئ پـه خپـلـو سترګـو ولیدې. په داسې واقعاتو او موسم کښې د امیر شیر علي خان د فوځ او سول افسـرانو دپاره چپ پاتې کیدل او د هغې نه فائده نۀ وچتول یو لوے قومي جرم وۀ ولې د دې نـامـردۍ لـویـه وجـه د شیـر عـلي خان رویه وه چې کومه هغۀ د دې جنګ په حقله اختیار کـړې وه. بـاوجـود د دې عـلـم نه چې فیرنګیانو د څو څو میاشتو نه تیارے د دې جنګ دپاره کـړے وۀ خپـل فـوځـونه ئ د فوځي اهمیت په مقاماتو رایوځاے کړي وو او لارډ لیټن هغۀ نه د خپـلو جنګي ارادو د پټولو څۀ کوشش نۀ وۀ کړے مګر د شیر علي خان بیا هم دا طمع وه چې فیـرنـګیان به ما سره د انصاف او د عدل په لار وچلیږي او د سیاسي جرګو او د خط و کتابت پـه ذریـعـه بـه مـا سره د ټولو تنازعو فیصله وکړي. هغه د دې نه خبر نۀ وۀ چې د یورپ قومونه خپـلـې جـګـړې هله پسته د سیاسي خط و کتابت او جرګو په ذریعه خلاصول غواړي چې څۀ وخـت پـه مـقابل کښې هم یو دا شان حکومت وي چې د هغۀ د طاقت هغوي سره مساوي وي او یـا زیـات وي. د یـورپ پـه سیـاسیـاتـو کښې انصاف او عدل بې معنې الفاظ دي او اکثر ئ زورور حـکـومـتـونه د کمزوري طاقتونو برخلاف د هغوي د لاندې کولو دپاره په طور د بهانې او عـذر استـعـمـالـوي. کـۀ چـرې د انـګـریـزي فوځ پیش قدمۍ سره هغۀ ښۀ په تکړه والي او زړورتیا نۀ صرف خپلو فوځونو ته د جنګ کولو صفا او قطعي احکام صادر کـړے وے بلکې د خپـل مـلـک ننـګیالي او جنګجو قبائل ئ هم راپاڅولے وے او د هغوي د خوراک او د سامان جـنـګ انـتـظـام ئ ښـۀ د اخـلاصه کـړے وے نو دا یقیني خبره ده چې بیشماره پښتانۀ به د خپل مـلـک او د قـوم د مینـې دپاره د هغۀ په مرسته ودریدلي وو. او د هغۀ د جنډې د لاندې به ئ د فیـرنـګیـانو د پیشقدمۍ په داسې جانفشانۍ مقابله کړې وه چې لارډ لیټن ته به د 41-1840ء ټولې تماشې ښکاره شوے وے. ولې هغه اسرې تباه کړو. انګریزان د پښتون قوم په بې خبرۍ کښـې پـه افغانستان باندې راوختل او تر څو چې هغوي ځان سنبالولو نو انګریزانو د هغوي په لویو لویو ښارونو باندې قبضه کړې وه. سره د دې هر کله چې پښتانۀ په دسمبر 1880ء کښې د انګریزانو په اصلي ارادو پوهه شو نو د افغانستان اکثر قبائل د فیرنګیانو مقابلې ته راووتل او چـارچـاپیـره مـلـک ئ پـه هـغـوي دا شـان سور تنور کړو چې هغوي د افغانستان په پریښودو مـجبور شو او د کوم مقصد او غرض دپاره چې هغوي په شیر علي خان دا جنګ شروع کـړے وۀ پـه هـغـې کـښـې بـالکل ناکام شول. او د خپلو زړو تجویزونو نه ئ خلاف عبدالرحمٰن خان سره صلح وکړه مګر په دې باندې به مخکښې مفصل بحث وشي.

لـکـه چـې څرنګ جنرل سټورټ د قلات غلزئ اخستو دپاره تلے وۀ دغه شان جنرل بـډولف د جـنـورۍ په میاشت کښې د ګرشک د اخستو دپاره روان شو هغۀ هم بې مقابلې په ګـرشک قبـضـه وکړه مګر د خوراک او د ګیا د طرف نه هغۀ ته هم هغه تکلیفونه پیښ شول چې کوم سټورټ ته پیښ شوي وو. اخر په پنځلسمه فرورۍ هغۀ ته حکم وشو چې قندهار ته

واپس شه. په واپسی کښې د علیزو او د نورو دراني قبیلو چې یو څو سوه خلق وو ځان له د بدولف د فوځ په یوه حصه حمله وکړه او یوه ښه مضبوطه جګړه په فریقینو کښې وشوه چې په هغې کښې یو فیرنګے افسـر میجر ولیم رینلډز او څلور تنه سپاهیان مړهٔ شول. او کرنل میلکم سن او دیرش تنه سپاهیان ژوبل شول او د درانو هم ډیر خلق ضائع شول په دې شان د بدولف فوځ په اول مارچ قندهار ته راورسیدو.

په ګرشک او په قلات غلزئ باندې د فیرنګیانو د قبضې کولو نه دا مدعا وه چې د ګرشک نه به په هرات او قلات غلزئ نه به په غزني باندې پیشقدمي کیږي. مګر دا حملې فیرنګیانو د خاص مصلحت په سبب ملتوي کړې.

## اتلسم باب

د لارډ لیټن د التمي میتم په جواب کښې د امیر شیر علي خان خط، سردار یعقوب خان نه د ملک د وفاداری‌قسم اخستل، واک اختیار هغهٔ ته حواله کول او په خپله د امیر شیر علي خان په جنوري 1879ء کښې روسي مشن سره روس ته روانیدل چې خپله مقدمه د روس په ذریعه د یورپ قامونو ته د انصاف دپاره وړاندې کړي، د زار روس امیر صاحب د روس د تلو نه منع کول، مزار شریف کښې د امیر شیر علي خان په یویشتمه فروری 1879ء کښې وفات.

امیر شیر علي خان د خپل زوي عبدالله جان د مرګ په سبب د لارډ لیټن د التمي میتم څهٔ جواب په مقرره تاریخ یعنې په یویشتم نومبر ور نهٔ کړو مګر په نولسم نومبر هغهٔ د هغې الزامونو کوم چې په هغهٔ باندې د هندوستان وائسرا‌ے لګولي وو جواب ولیکلو او د یو قاصد په لاس ئې سر سمویل براؤن ته واستول. دا قاصد چې باسول ته راورسیدو نو ورته معلومه شوه چې فیرنګیانو خو جنګ شروع کړے دے او په علي مسجد باندې ئې قبضه کړې ده د دې کبله هغه په‌خپله خو واپس شو او د بل قاصد په لاس هغه خط براؤن ته په دیرشم نومبر ورسیدو. په دې خط کښې امیر صاحب په ډیرې ښې طریقې سره د لارډ لیټن د ټولو الزامونو نه انکار کړے وهٔ او د هغهٔ یوه مطالبه ئې هم نهٔ وه منظوره کړې د دې خط انګریزي ترجمه چې څهٔ رنګ په انګریزي کاغذاتو کښې شائع شوې ده مونږ بجنسهٖ درج کوؤ. په کومو شسته او خوږو او د خوش خلقی الفاظو کښې چې دا جواب لیکلے شوے دے کهٔ چرې هغه د لارډ لیټن د التمي میتم طرز خطاب سره مقابله شي نو هر غیر جانبدار لوستونکي ته به د دواړو تحریرونو لو‌ے فرق معلومه شي:

" Be it known to your Excellency that I have received, and read from beginning to end, the friendly letter which your Excellency has sent in reply to the

letter I despatched by Nawab Ghulam Hussain Khan. With regard to the expressions used by your Excellency in the beginning of your letter, referring to the friendly character of the mission and the good-will of the British govt, I leave it to your Excellency, whose wisdom and justice are universally admitted, to decide whether any reliance can be placed upon good-will, if it be evidenced by words only. But if, on the other hand, good-will realy consists of deeds and actions, then, it has not been manifested by the various wishes that have been expressed, and the proposal that have been made by British officials during the last few years to officials of this God-granted govt- proposals, which, from their nature it was impossible for them to comply with.

One of these proposals referred to my undutiful son the ill-starred wretch Muhammad Yaqoob Khan, and was contained in a letter addressed by the official of the British govt; to the British Agent then residing in Kabul. It was written in that letter that if the said Yaqoob Khan be released and sit at liberty, our friendship with the Afghan Govt; will be firmly cemented; but that otherwise it will not.

There are several others grounds of complaint of a similar nature which contain no evidence of good-will, but which, on the contrary, were effective in increasing the aversion and apprehension already entertained by the subjects of this God-granted govt.

I assure your Excellency that on the contrary, officials of this God-granted govt; in repulsing the mission, were not influenced by any hostile or inimical feelings towards the British govt, nor did they intend that any insult or affront should be offered; but they were afraid that the independence of this govt; might be affected by the arrival of the mission and that the friendship which has now existed between the two govts for several years might be annihilated.

A paragraph in your Excellency's letter corroborates the statements which they have made to this govt. The feelings of apprehension which were aroused in the minds of the people of Afghanistan by the mere announcement of the intention of the British govt; to send a mission to Kabul, before the mission itself had actually started or arrived at Peshawar, have subsequently been fully justified by the statement in your Excellency's letter that I should be held responsible for any injury that might befall the tribes who acted as guids to the mission, and that I should be called upon to pay compensation to them for any loss they might have sufferred and that, if at any time those tribe should meet with ill treatment at any hands, the British govt would at once take steps to protect them. Had these apprehensions proved groundless, and had the object of the mission been really friendly, and no force or threats of violence used, the mission would, as a matter of course, have been allowed a free passage, as such mission are customary and of frequent accurence between allied states, I am now sincerely stating my own feelings when I say that this govt; had maintained, and always will maintain, the former friendship

which existed between the two govts; and cherishes no feelings of hostility and opposition towards the British govt.

It is also incumbent upon the officials of the British Govt; that out of respect and consideration for the greatness and eminence of their own govt; they should not consent to inflict any injury upon their will disposed neighbours, and to impose the burden of grievous troubles upon the shoulders of their sincere friends; but, on the contrary they should exert themselves to maintain the friendly feelings which have heitherto existed towards this God-granted govt, in order that the relation between the two govts may remain on the same footing as before; and if, in accordance with the custom of allied states, the British Govt should desire to send a purely friendly, and temporary mission to this country with a small escort not exceedings twenty or thirty men, similar to that which attended the Russian mission, this servant of God will not oppose its progress."

ترجمه : "آنجناب ته دې معلومه وي چې كوم دوستانه خط ما ته زما د هغې خط په جواب كښې راستولے دے چې كوم ما د نواب غلام حسين خان په لاس دراستولے وۀ ماته موصول شو او هغه ما د اول نه تر اخره پورې ولوستو. د آنجناب دخط په ابتدا كښې چې كوم الفاظ استعمال شوي دي او په هغې كښې د دې مشن دوستانه حيثيت ته او د حكومت برطانيه نيک نيتي ته اشاره شوې ده نو زۀ د دې خبرې فيصله آنجناب ته چې په عقل او انصاف كښې مشهور عالم ئ پريږدم چې آيا په دا قسم نيک نيتي څوک اعتبار كولے شي چې هغه صرف په لفظونو كښې بيان شوے وي. ولې كۀ چرې د دې برخلاف اصل نيک نيتي دعمل او د كارونو نه ښكاره كيږي نو كوم مطالبات چې زما نه شوي دي او كوم تجويزونه چې په دې وروستنو شو كالو كښې انگريزي افسرانو د دې خداداد حكومت افسرانو ته پيش كړي دي حالانكې هغه دا شان مطالبات او تجويزونه وو چې د كوم منل ناممكن وو نو د دې نه خو دا نيک نيتي نۀ ښكاره كيږي.

په دې تجويزونو كښې يو تجويز زما د ناخلف او بدبخت زوي محمد يعقوب خان متعلق وۀ چې د حكومت برطانيه افسرانو د يو خط په ذريعه چې كوم هغوي خپل ايجنټ مقيم كابل ته ليكلے وۀ. په هغه خط كښې دا ليكلي شوي وو چې كۀ چرې يعقوب خان پريښودې شو او رها كړې شو نو زمونږ دوستي به حكومت افغانستان سره ښه مضبوطه شي او كۀ نۀ وي نو نۀ به شي.

دغه شان د دې قسم شكايتونو اسباب نور هم شته چې د هغې نه هم د نيک نيتي څۀ شهادت په لاس نۀ راځي بلكې د دې برخلاف د هغې په وجه هغه ناراضگي او د زړۀ شكونه نور هم زيات شول چې كوم د دې حكومت خداداد د رعايا په زړونو كښې د اول نه موجود وو او دا چې ما انگريزي مشن ته د راتلو نه انكار كړے دے نو آنجناب د هغې په باره كښې

وئیلي دي چې زما د رویې نه دا معلومیږي چې د دې سبب زما په زړهٔ کښې حکومت برطانیه سره عناد دے. د دې برخلاف زهٔ آنجناب ته دا یقین ورکوم چې د دې مشن په بندولو کښې د دې حکومت خداداد د افسرانو په زړونو کښې حکومت برطانیه سره نهٔ خو د دشمنۍ او عناد کولو څهٔ خیال وهٔ او نهٔ د هغوي دا نیت وهٔ چې د حکومت برطانیه دې څهٔ سپکاوے یا بې عزتي وشي بلکې هغوي سره د دې خبرې ویره وه چې د مشن په راتلو به زمونږ د ملک په ازادۍ کښې خلل راشي او کومه دوستي چې تر دې وخته پورې د دواړو حکومتونو په منځکښې د څو کالو نه راغلې ده هغه به تباه شي.

د آنجناب د خط یوه فقره هم د هغې بیان تصدیق کوي چې کوم هغوي دې حکومت ته کړے دے. د شکونو کوم خیالات چې د حکومت برطانیه تش د دې اعلان نه چې مونږ مشن افغانستان ته لیږو د افغانستان د خلقو په زړونو کښې پیدا شوي وو. حالانکې مشن پخپله نهٔ خو لا را روان شوے وهٔ او نهٔ لا پیښور ته رارسیدلے وه د آنجناب د خط یوه فقره هم د هغې بیان تصدیق کوي چې کوم هغوي دې حکومت ته کړے دے. د شکونو کوم خیالات چې د حکومت برطانیه تش د دې اعلان نه چې مونږ مشن افغانستان ته لیږو د افغانستان د خلقو په زړونو کښې پیدا شوي وو، حالانکې مشن پخپله نهٔ خو لا را روان شوے وهٔ او نهٔ لا پیښور ته رارسیدلے وهٔ.

د آنجناب د خط د دې بیان نه بالکل رښتوني ثابت شو چې کهٔ هغې قبائلو ته چا چې د مشن رهبري کړې وه څهٔ نقصان ورسیدو نو زهٔ (یعنې شیر علي خان) به د هغې ذمه وار ګڼلے شم او کهٔ چرې هغوي ته څهٔ نقصان رسیدلے وي نو زهٔ به د هغې د تاوان ورکول ذمه واریم، او بیا دا چې کهٔ چرې هم قبائلو سره زما د طرف نه څهٔ بد سلوک وشو نو حکومت برطانیه به د هغوي د بچاؤ دپاره فوراً کارروائي وکړي. کهٔ چرې زمونږ دا شکوک بې بنیاده ثابت شوے وے او یا د مشن د راتلو مقصد په حقیقت کښې دوستانه وے او د زور زیاتي او د تشدد د ویرې نه وے ښودلے شوے نو مشن ته به پخپله په ازادۍ سره د راتلو اجازت شوے وے ځکه چې د دوؤ دوستانو حکومتونو په منځکښې د دې قسم مشن د راتلو رواج شته او اکثر ځي راځي. زهٔ په دې وینا کښې په ایماندارۍ خپل خیالات ښکاره کوم چې دې حکومت همیش دپاره د زړې دوستۍ هغه تعلقات ساتلي دي او بیا آئنده هم ساتي کوم چې د دواړو حکومتونو په منځکښې راغلي دي او د دې حکومت په زړهٔ کښې د حکومت برطانیه هیڅ قسم د مخالفت او د عناد خیالات نشته.

د حکومت برطانیه افسرانو له هم پکار دي چې د خپل حکومت لوے والي او د عظمت په خاطر خپل یو خیر خواه ګاونډي ته نقصان رسول خوښ نهٔ کړي او نهٔ د خپل مخلص دوستانو په سر باندې د لویو لویو تکلیفونو پنډونه وغورځوي بلکې د دې برخلاف

هغوي له انتهائي كوشش د دې خبرې پكار دے چې د دوستى هغه تعلقات قائم پاتې شي كوم چې د دواړو حكومتونو په منځكښې راغلي دي. د دې دپاره چې د دواړو ملكونو تعلقات لكه چې څنګه وړومبي وو هم هغه شان پاتې شي او كۀ چرې د دوؤ دوستانو حكومتونو د رواج مطابق حكومت برطانيه دې ملک ته محض يو دوستانه او عارضي مشن راستول غواړي او هغې سره يو ورکوټے محافظه دسته چې هغه د شلو ديرشو تنو نه زياتي نۀ وي راځي لكه چې څرنګ روسي مشن سره راغلي وو نو دا د خدائے بنده به د هغې په راتلو كښې څۀ مخالفت نۀ كوي."

د دې خط د ملاحظې نه معلوميږي چې امير شير علي خان فيرنګيانو سره نۀ صرف دا چې جنګ كول نۀ غوښتل بلكې هغۀ د دې راتلونكي جنګ دپاره څۀ تيارے هم نۀ كولو. ولې د لارډ ليټن او د هغۀ د جرنيلانو د څو مياشتو نه په افغانستان باندې د حملې كولو تيارى شروع كړے وے. هم دغه وجه ده چې د څۀ وخت دپاره انګريزي فوځونه بې مقابلې په افغانستان كښې په دريو محاذونو باندې ورننوتل او چارچاپيره ئې د پښتنو په ملک كښې تباهي شروع كړه مګر دا ټوله د شير علي خان خپله بې وقوفي وه هغۀ سيوا د دې نه تر اخره پورې هيڅ ونۀ كړل. هغۀ پرله پسې ډير خطونه زار روس او د هغۀ افسرانو ته د فيرنګيانو د زور زياتي او د هغوي د ناجائزې پيش قدمي برخلاف وليكل. ولې د كمزورې سړي فريادونه څوک اوري. د دې خطونو په جواب كښې د روسي تركستان ګورنر جنرل كافمين هغۀ ته په څلورم نومبر وليكل چې كۀ انګريزان تاسو سره صلح كول غواړي نو هغوي سره صلح وكړه. ولې امير صاحب هغۀ ته په شلم نومبر بيا وليكل چې ما ته انګريزي افسرانو يو ډير سخت درشت او د دشمنى خط ليكلے دے او اګر چې ماته د انګريزي حكومت د رويې نه معلوميږي چې زما ټول كوششونه د هغوي د رضا كولو دپاره بې سوده دي ولې ما ستا د مشورې او د شهنشاه روس د حكم مطابق يو ډير نرم او دوستانه خط د هغې په جواب كښې وليكلو او هغوي ته مې د صلح تجويز پيش كړو.

د امير شير علي خان د دې نولسم تاريخ په خط باندې لارډ ليټن هيڅ غوږ كښېنښوډو او خپله جارحانه كارروائي ئې جاري وساتله. د دې نه پس امير صاحب وړومبے خو قابل تعريف زړورتيا او دليري وښودله. هغۀ خپلو ټولو افسرانو ته حكم وكړو چې خپل بال بچ لرې او محفوظ مقاماتو ته ورسوئ او متفقه طور د فيرنګيانو مقابلې ته راوځئ مګر دې سره هغۀ روسي حكومت ته نور خطونه د دې مضمون وليكل چې كۀ چرې فيرنګيان دافغانستان په لاندې كولو كښې كامياب شول نو دا به د زار دپاره ډيره د شرم او د سپكاوي خبره وي ځكه چې د دې جنګ ټوله وجه كابل ته د روسي مشن راتلل وو له دې سببه پكار دي چې د روسي تركستان ټول فوځونه دې زما امداد ته راواستولے شي ولې د دې خطونو د

لیکلو نه دوه ورځې پس یعنې په لسم دسمبر شیر علي خان ناساپه یو دربار وکړو او په هغې کښې هغۀ خپلو وزیرانو او سردارانو ته دا اعلان وکړو چې زۀ سینټ پیټرزبرګ د روس صدر مقام ته د دې غرض دپاره د روانیدو اراده کوم چې زۀ به په هغه ځاے کښې د شهنشاه روس په ذریعه د یورپ د حکومتونو یوه جرګه راغونډه کړم او په هغه جرګه کښې به زۀ د حکومت برطانیه برخلاف خپله ټوله مقدمه پیش کړم.

د شیر علي خان دا فیصله او د هغۀ د خپل ملک نه د داسې خطرناک جنګ په نښته کښې وتل سخت د کوتاه اندیشی کار وۀ. هغه د یورپ د سیاسیاتو نه بالکل بې خبره وۀ هغۀ چرته دا اوریدلي وو چې په برلن کښې د روس او د ترکو د جګړې د فیصلې دپاره د یورپ ټولو حکومتونو یوه جرګه کړې وه او د دې جرګې په ذریعه د یورپ د سیاسیاتو ډیرې مشکلې مسئلې حل شوې وے مګر هغۀ ته دا نۀ وه معلومه چې د روس او د ترکو په جګړه کښې لویه دلچسپي د فیرنګیانو وه. په هغه جګړه کښې کۀ روس ترکو له شکست ورکړے وے نو روس به په قسطنطنیه او په درۀ دانیال باندې پیش قدمي کړې وه او د روس سمندري بیړه به په بحیره روم کښې داخله شوې وه او دغه شان به د انګریزانو لار د هندوستان په طرف په خطره کښې پریوتې وه. بلکې دې سره سم د هندوستان ټول انګریزي مقبوضات به د روس د لاس نه په خطره کښې شوي وو. د دې دپاره فیرنګیانو دا نۀ غوښتل چې ترک دې د روس نه شکست وخوري له دې کبله فیرنګیان د ترکو په مرسته ودریدل او روس سره د مقابلې دپاره تیار شول. ولې نۀ خو فیرنګیانو په یورپ کښې جنګ په خپل وس غوښتلو او نۀ روس. ځکه چې دا دواړه ډیر لوے او د مساوي طاقت حکومتونه وو له دې کبله د انګریزانو په کوشش د برلن جرګه منعقده شوه او د ترکو او د روس او د یورپ د نورو حکومتونو په منځکښې فیصله وشوه. ولې دا فیصله فیرنګیانو ځکه غوښتله چې د هندوستان انګریزي مقبوضاتو ته خطره پیدا نۀ شي. شیر علي خان ته دا خیال راغلو چې د روس او د فیرنګیانو په منځکښې د ډیرې مودې نه د افغانستان په باره کښې یوه خاصه سمجهوته شوې ده او هغه دا وه چې افغانستان به د روس د اثر نه همیش بهر وي. او د سټولیټاف مشن افغانستان ته د هغې سمجهوتې نه خلاف ځکه راغلے وۀ چې د روس او فیرنګیانو تعلقات په یورپ کښې د جنګ تر حده رسیدلي وو او په دې سبب روس په هندوستان باندې د حملې کولو نیت کړے وۀ. نو هر کله چې روس او د فیرنګیانو فیصله وشوه نو بیا د روس د افغانستان د معاملاتو سره څۀ غرض وۀ. هغۀ افغانستان ته د مشن په راستولو کښې خپله فائده لټوله نه چې د افغانستان. نو چې څۀ وخت روس ته انګریزانو سره د جنګ نښتلو نه څۀ سود په نظر نۀ راتلو نو د امیر شیر علي خان مظلومیت او په هغۀ باندې د انګریزانو زیاتي کولو خو روس فیرنګیانو سره جنګ کولو ته مائل کولے نۀ شو. د امیر شیر علي خان غوندې هوښیار او تجربه کار

سیاستدان لـه پـه دې خبـره پـوهیـدل پـکـار وو چـې د یورپ طاقتونـه هیڅا سره هم د چا د مظلومیت په سبب او د عدل او انصاف د اصولو دپاره امداد نۀ کوي تر څو پورې چې د هغوي خپل ملک او قوم ته په هغې جنګ کښې څۀ فائده نقصان نۀ ښکاري.

کـۀ چـرې شیـر عـلي خان سینټ پیټرزبرګ ته رسیدلے هم وے او زار روس د هغۀ د خواهش مطابق د یورپ د حکومتونو یوه جرګه راغونډه کړے هم وے نو چونکې دافغانستان د مـعـامـلې د یورپ د معاملو سره هیڅ تعلق نۀ وۀ او نۀ د هغې څۀ اثر د یورپ په سیاسیاتو باندې پریوتلو په دې وجه به یو یورپین طاقت هم د افغانستان دپاره فیرنګیانو ته مخ نۀ وۀ رااړولے. د یـورپ طـاقـتـونـه د یورپ د ملکونو د خلقو خیرخواهي او ښیګړه غواړي. د ایشیا او د افریقې باشنده ګان هغوي ته د خپل ارام، دولت، عیش و عشرت او د خپل عروج یوه ذریعه ښکاري. او لـکـه چـې څـرنـګ بـنـیـادم د چـارپـایو او د نورو حیواناتو نه فائده وچتول او هغوي د خپلو ښیـګـړو دپـاره استعـمـالول خپل یو حق ګڼي او په هغې کښې د هغوي د ارام، د خوشحالی د خـفـګان یا د رضامندی او د غیر رضامندی څۀ لحاظ نۀ ساتي دغه شان د یورپ حکومتونه هم د ایشیـائـي خلقو د حقوقو، د هغوي د احساساتو، د هغوي د ازادی او د هغوي د عزت او ابرو خـاطـر او لـحـاظ سـاتـل پـه خپلو فرائضو کښې نۀ ګڼي او هر کله چې هغوي د دې ملکونو په مـعاملاتو کښې څۀ دخل ورکوي نو هغه صرف د خپلو قومونو او ملکونو د فائدې او نقصان په خیـال ورکـوي. هر کله چې د یورپ لوے لوے سیاستدانان اعلان وکړي چې په دنیا کښې دې ازادي او جـمـهوریت وي نو د هغې نه هغوي صرف د یورپ دنیا او د یورپ قومونه مراد وي نه چـې د ایشیـا یـا افـریقه. د یورپ حکومتونه ازادي او جمهوریت، تهذیب او اخلاق، مذهب او تـمـدن صرف د یورپین قومونو دپاره مخصوص ګڼي او د ایشیا او افریقې اصلي باشنده ګان د خدائي نعمتونو هډو مستحق نۀ ګڼي.

پـه دې واقـعـاتـو کـښـې امیر شیر علي خان له په روس باندې ملا تړل او د هغوي نه دا طمع کول چې زار به په دې سخت وخت کښې د هغۀ په مرسته ودریږي او د انګریزانو مقابله بـه د هـغـۀ په خاطر وکړي دهغۀ سخته ناپوهي او غلطي وه. ولې د دې برخلاف کۀ چرې شیر عـلي خـان لـږ خپـل زړۀ مـضـبـوط کـړے وے او روس ته د تلو په ځاے هم په کابل کښې پاتې شـوے وے نـو سـره د انـګـریزانو د دې لویو لویو فوځونو، توپو او وسلو د پښتنو ټول قوم به د خپـل مشـر پـه اپیل باندې راپاڅیدلے وۀ او کۀ چرې د هغۀ کابلي فوځونو شکست هم خوړلے وے نـو بیا بـه د ژمـي پـه مـوسـم کـښـې د اولـس عـام خـلـق ځاے په ځاے په اتفاق سره لکه د 1840-41ء په شان راوچت شوي وو او هیچرې به ئې فیرنګیان د پښتنو د ملک اخستو ته نۀ وو پریښې.

د دې اعـلان نه پس شیر علي خان بیا خپل مشر زوے یعقوب خان چې لا هم هغه شان

په بالاحصار کښې بنديوان وۀ دربار ته راوغوښتو او د ټولو سردارانو او خانانو په مخکښې ئ د هغۀ نه د افغانستان او د خپل ځان د وفادارئ حلف واخستو او د حکومت ټول اختيارات ئ هغۀ ته وسپارل. دې نه درې ورځې پس يعنې په ديارلسم دسمبر هغه سره د خپلو بيبيانو، د لويو لويو سردارانو او کرنل روزګ نوويو وغيره د روسي مشن د ممبرانو د ترکستان په طرف روان شو. بيا هغۀ د دې ټولې واقعې اطلاع فيرنګيانو ته په يو خط کښې ورکړه او ورته ئ وليکل چې زۀ به هم خپله مقدمه د يورپ قومونو ته پيش کړم. او تاسوهم خپل خواهشات او واقعات هغوي ته بيان کړئ. بيا په دويشتم دسمبر هغه د لارې نه د خپلو صوبو د ګورنرانو په نوم يو ورد فرمان جاري کړو او دا ټول برني واقعات ئ په هغې کښې هغوي ته ظاهر کړل. په اوله جنورئ 1879ء هغه مزار شريف ته چې د افغاني ترکستان صدر مقام دے ورسيدو. په هغه ځائے کښې هغۀ د يو څو ورځو د ارام او د علاج دپاره پاتې شو. شير علي خان يو خو عمر رسيده سړے وۀ او بل دا چې سخت ناروغه وۀ. د کابل نه تر مزار شريف پورې مزل هغه نور هم ستومانه کړو او تر سينټ پيټرزبرګ پورې لا هغۀ ته نور پنځۀ زره درې سوه او نولس ميله پاتې وو. د کابل نه مزار شريف درې سوه او يو اتيا ميله دے او لارئ هم ډيره سخته ده. په مزار شريف کښې هغۀ ته د روسي ګورنر جنرل مقيم ترکستان موسيو کافمين درې خطونه دا قسم راورسيدل چې د هغۀ د زړۀ ټولې منصوبې ئ خورې ورې کړې. په وړومبي خط کښې کافمين هغۀ ته ليکلي وو چې د برطانيې وزيرانو د روس سفير سره دا اقرار کړے دے چې فيرنګيان به د افغانستان ازادئ ته هيڅ نقصان يا ضرر نۀ ورکوي. ولې دا ئ هم ورته وئيلي وو چې شهنشاه روس به په موجوده جنګ کښې امير صاحب سره د هيڅ قسم فوځي امداد نۀ شي کولے. په دويم خط کښې کافمين په اوومه جنورئ امير صاحب ته وليکل چې تۀ خپل ملک بالکل مۀ پريږده بلکې فيرنګيانو سره يا پخپله او يا د يعقوب خان په ذريعه روغه وکړه. او په دې طريقه د افغانستان ازادي برقرار وساته. د دې نه مخکښې هغه ورته ليکلي وو چې کۀ چرې تۀ روس ته راغلې نو ستا کار به د وړومبے نه هم زيات خراب شي. په دريم خط کښې کافمين هغۀ ته په يولسمه جنورئ غوټ پريکړې وليکل چې شهنشاه روس ماته حکم راکړے دے چې زۀ تا تاشقند ته ځان څخه راوبلم ولې ماته هغۀ ستا سينټ پيټرزبرګ ته د تلو په حقله هيڅ هدايات نۀ دي راکړي.

اوس د شير علي خان سترګې پرانستې شوې، هغۀ ته معلومه شوه چې د روس نه زما اميدونه ټول بې ځايه وو. ولې په کومو شرطونو چې د فيرنګيانو هغۀ سره د روغې کولو نيت وۀ په هغې خو د هغۀ د ملک او د قوم ټوله ازادي تلله نه چې برقرار پاتې کيدله او کۀ چرې هغه د دې شرطونو منلو ته تيار وے نو دې دومره قضيو او مقابلو ته څۀ حاجت وۀ او د روس سره د دې دومره طول طويل خط و کتابت او د خبرو اترو ضرورت څۀ وۀ. امير شير علي

خان ته اوس دا ثابته شوه چې کۀ چرې زۀ کابل نه راوتې نۀ وے او دا دومره وخت مې د روس په طمع نۀ وے ضائع کړے نو اغلب وه چې د خپلو متبو په زور او د خپل قومي طاقت په زور به مې فيرنګيان د خپل ملک نه شړلي وو. هغۀ ته به په دې اثنا کښې دا خبرونه هم رارسيدلي وو چې اګر چې براؤن تر جلال اباد پورې خو رارسيدلے دے ولې نۀ خو هغه د مخکښې کيدو قابل دے او نۀ هغۀ په اخستې شوې علاقه کښې د يوې ګړى دپاره په ارام کښيناستې شي. دا به هم هغۀ ته معلومه شوې وه چې ازاد قبائلو رابرټس د پيواړ کوتل د جنګ نه پس د خوست د علاقې نه په زور وويستو او نور د يو پل د وړاندې کيدو طاقت په هغۀ کښې نشته. د ستهورټ او د بډولف د فوځونو د بدحال نه به هم هغه ضرور خبر شوے وي چې يو د قلات غلزئ نه او بل د ګرشک نه په واپس کيدو مجبور شو. د هغۀ په زړۀ کښې به دا وخت يو لوے ارمان وۀ چې کۀ چرې زۀ په خپل صدر مقام کښې موجود وے نو د فيرنګيانو په فوځونو به مې يو طوفان رادوخاره کړے وۀ. هغه اوس هم واپس کيدے شو او د خپل قوم د مشرى واګې ئې په خپل لاس کښې سنبالولې شوې ولې معلوميږي چې په مزار شريف کښې هغه د کابل نه په خپلو راوتو سخت پښيمانه او شرمنده وۀ او بيا صرف د دې ندامت په سبب هغه واپس کابل ته په تلو نۀ رضا کيدو. هغۀ خپل ضمير او پښتو په دې خبره سخت ملامته کولو چې ما ولې د افغانستان د مصيبت او د تکليف په وخت کښې د خپل قام د رهبرى او مشرى نه تيښته وکړه. چنانچه يو سړے د ليدو کتو خبره کوي چې هر څومره موده چې امير شير علي خان په خپلو اخري ورځو کښې په مزار شريف کښې وۀ نو هغۀ د سخت غم او د خفګان په سبب نۀ خو خپل علاج ته چرې توجه وکړه نۀ ئې سمه روټۍ وخوړله بلکې دا کوشش ئې کولو چې زۀ اوس زر د دې دنيا نه رخصت شم. او زما د دې شرمندګۍ او تکليفونو خاتمه وشوې. چنانچه په دې حالت کښې هغۀ په يويشتمه فرورى 1879ء کښې د شپږ پنځوسو کالو په عمر کښې وفات شو. د هغۀ د ملک او د قوم د مينې په ثبوت کښې مونږ د کرنل هنّا د رائ يو څو فقرې د هغۀ د کتاب نه درج کوؤ :

" The place in history to be finally awarded to Sher Ali Khan will be determined, however, not by the achievements or failures of his internal administration, not by the loves or hatreds of his private life, but solely by his foreign policy, and more especially by his refusal to yield one jot of his own dignity and his country's independence to the demands of the British ultimatum. That refusal may stamp him as a madman, or a fool, in the eyes of those who look merely to the sequel of events as they affected him and his dynasty; but viewed in the broader light of subsequent history as it affected Afghanistan, his unbending attitude bears testimony to his foresight and patriotism. The choice offered him, as he understood it, was not between war and peace, but between war then, and war at some not distant date. He knew that if

he apologised for the conduct of his officers, who had done their duty in upholding his authority and dignity, he would forfeit their respect; he felt sure that he consented to receive a British Envoy in his capital, he would soon be called upon to permit British officers to reside in his frontier towns, and that when their presence had inflamed to the highest point his subjects hated of foreigners, and that passion had found its natural expression in the murder of the intruders, he would either have to bear the responsibility for their deed, or to become the instrument of British revenge; and whether he elected to side with, or against his people, the result would still be the same- for them, war; for himself, the certain loss of reputation, the probable loss of life. And underlying these considerations, was his profound conviction that the new policy of the British Govt; aimed at destroying the independence and integrity of his kingdom, and that he himself was the object of that Government's special ill will, or at least, of the ill-will of the man through whom alone he was able to approach it, and thus his personal interests and the interests of his people alike led him to the conclusion that it was better to have war before suffering humiliation, than after."

ترجمه :" په تاریخ کښې چې کومه مستقله درجه به شیر علي خان ته ورکیدے شي نو د هغې فیصله به په دې نۀ کیږي چې آیا د هغۀ اندورني انتظام کامیاب وۀ او کۀ ناکامیاب. او نۀ به په دې کیږي چې په کورني ژوندون کښې د هغۀ څوک خوښ وو او څوک ناخوښه. بلکې د هغې فیصله به صرف د هغۀ په بیروني پالیسۍ کیږي او بالخصوص په دې خبره به کیږي چې هغۀ انګریزي التهي میتهم د مطالباتو په سلسله کښې نۀ خو د خپل آبرو او نۀ د خپل ملک د ازادۍ نه یو بخرے هم فیرنګیانو ته پریښودو. کوم خلق چې آئنده واقعاتو ته صرف په دې نظر ګوري چې څۀ رنګ هغوي د هغۀ ذات او د هغۀ خاندان ورک کړو ممکن ده چې هغوي د شیر علي خان دې رویې ته د یو لیوني یا د یو بیوقوف سړي رویه وائي مګر کۀ چرې په دې واقعاتو باندې د ټول افغانستان د مستقبل تاریخ په رڼا کښې غور وشي نو سړے به په دې نتیجه ورسي چې فیرنګیانو ته د شیر علي خان د نۀ ټیټیدو رویه د هغۀ د دور اندیشۍ او د حب الوطنۍ لوے شهادت دے. لکه چې څرنګ هغه ښۀ پوهه شوے وۀ نو حکومت برطانیه دا نۀ وو کړي چې هغۀ له ئ په جنګ کښې او په صلح کښې د یو څیز د خوښولو اختیاز ورکړے وۀ بلکې د کوم څیز د خوښولو اختیار ئ چې هغۀ له ورکړے وۀ هغه دا وۀ چې اوس جنګ کوے او کۀ بیا. هغۀ ته دا معلومه وه چې کۀ چرې زۀ د خپلو هغو افسرانو د رویې دپاره معافي وغوارم چې چا زما آبرو او زما اختیارات برقرار ساتلي دي او خپل فرائض ئ ادا کړي دي نو بیا به زۀ د هغوي د احترام قابل پاتې نشم. د هغۀ دا یقین وۀ چې کۀ زۀ نن په خپل صدر مقام کښې انګریزي سفیر ته د راتلو اجازت ورکوم نو سبا له زما نه دا مطالبه کیږي چې اوس انګریزي افسران په خپل سرحدي مقاماتو کښې دیره کیدو ته پریږده او کۀ چرې دا مې

وکړل او د غیر قوم د دې خلقو موجودګۍ زما د رعایا په زړهٔ کښې د سخت نفرت لمبې بلې کړي او کهٔ بیا هغوي د خپل غم او غصې اظهار قدرتي طور د دې پردو سړو د قتل په شکل کښې وکړو نو بیا به یا خو زهٔ د هغوي د فعل ذمه واري په سر وچتوم او یا به زهٔ د انګریزانو د بدل اخستو آلهٔ کار جوړیږم. او کهٔ چرې زهٔ د خپل قوم په مرسته ودریږم او کهٔ د هغوي برخلاف، په دواړو صورتونو کښې به نتیجه یوه وي او هغه دا چې د قوم دپاره جنګ او زما دپاره یقیني بدنامي او د ځانونو ضائع کیدل.

په دې امورو باندې د غور کولو نه علاوه د هغهٔ دا پوره اطمینان وهٔ چې د حکومت برطانیه د نوې پالیسۍ مقصد زما د سلطنت ازادي او خودمختاري تباه کول دي. او دا چې د حکومت برطانیه ما سره خاص ورانه ده یا کم از کم د هغه سړې راسره ورانه ده چې د چا په وساطت زهٔ هغوي ته رسیدلے شم. او دغه شان د هغهٔ خپلو ذاتي او قومي مفادو هم هغه په دې نتیجه ورسولو چې بهتره به دا وي چې د رسوایۍ نه وړومبے جنګ وشي نه چې پس."

قصه مختصر دا ده چې د لارډ لیټن او د هغهٔ مشیرانو د امیر شیر علي خان نه دا مطالبات کول چې انګریزي سفیر ته فوراً خپل صدر مقام ته د راتلو اجازت ورکړه او کهٔ چرې دا اجازت تهٔ ور نهٔ کړے نو دا به ستا د طرف نه انګریزي حکومت سره د دشمنۍ یو فعل ګڼلے شي. بیا دا چې په سرحدي مقاماتو باندې به انګریزي افسران مستقل دیره کیدو ته پریږدې او په فوځي امورو به د هغوي په مشورې باندې جائز توجه کوے او بیا دا چې یو مستقل سفارت به ستا په صدر مقام کښې د فیرنګیانو د طرف نه دیره وي وغیره وغیره دا قسم مطالبات وو چې په هغې باندې د افغانستان حیثیت د هندوستان د یو راجه او د نواب درجه پاتې کیده او د پښتنو د قوم نه به د دې مطالباتو په منلو لږه موده پس د هر قسم ازادي تلله. امیر شیر علي خان ته دا معلومه وه چې کهٔ چرې زهٔ دا مطالبات منظور کړم او انګریزي افسران په کابل کښې او د افغانستان په نورو سرحدي مقاماتو کښې دیره کیدو ته پریږدم نو د ټول قوم خودمختاري به زهٔ په خطره کښې واچوم. او چونکې د پښتنو قام په دې خبره ډیر ښهٔ پوهیږي او هغوي ته د فیرنګیانو ټول ژوندون د هغوي پالیسي، پښتنو سره د هغوي طرز سلوک د 42-41-40-1839ء د واقعاتو نه معلوم دے له دې کبله به هغوي هیچرې هم دا افسران بې قتلولو پرې نهٔ ږدي. او بیا به فیرنګیان ما د هغې ذمه وار کوي. په دې وجه هغه د دې مطالباتو په نهٔ منلو کښې حق بجانب وهٔ او پکار وو چې هغه هم هغه رویه اختیار کړے وے کومه چې هغهٔ اختیار کړه. او د دې دپاره هغهٔ خپل ټول ذاتي او خانداني قرباني ته تیار شو مګر کومه غلطي چې هغهٔ وکړه هغه دا ده چې هغهٔ فیرنګیانو سره د جنګ تیارے ونهٔ کړو او تر اخره پورې د هغوي د عدل و انصاف او د سیاسي جرګو په ذریعه د دې اهمو تنازعو د فیصلې په طمع پاتې شو. او بیا څهٔ وخت چې جنګ د هغهٔ په سر راغلو او بغیر د میدان

جنګ نه بله لاره د هغهٔ د قوم د عزت او د آبرو د ازادۍ او د خودمختارۍ د ننګ او د ناموس د برقرار ساتلو پاتې نشوه نو هغهٔ میدان پرېښودو په خپلو متېو ئې باور ونهٔ کړو او د بل په طمع پاتې شو.

## نولسم باب

د ازادو قبائلو پې در پې حملې، د باربردارۍ دپاره د څاروو نهٔ پیدا کېدل او د مړو د لاسه په روغو باندې د بیمارۍ لګېدلو په وجه د فیرنګیانو تنګېدل او اوس پخپله پښتنو سره د روغې جوړې خبرې کول، یعقوب خان ته د فیرنګیانو شرطونه، د ګندمک عهدنامه چې په شپږویشتم مئ 1879ء کښې شوې وه.

د دې نه اګاهو مونږ ذکر کړے دے چې انګریزي فوځونو ته څومره مشکلات د خپلو معمولي پیش قدمو په دوران کښې پیښ شول. او دا مشکلات تر دې حده پورې ورسېدل چې د هغوي دپاره خپل اصلي مقصد او منصوبې حاصلول ناممکن شول. دا مو هم ذکر کړے دے چې فیرنګیانو ته دا مشکلات د امیر صاحب د فوځونو د طرف نه، نه بلکې د ازادو قبائلو لکه د مومندو، افریدو او د وزیرو مسعودو د طرف نه رابرڅېره شوي وو. په دې سلسله کښې د دې خبرې وینا کول هم ضروري دي چې په بونیر او په سوات کښې هم لویو لویو ملیانو د جهاد وعظونه شروع کړل او اګر چې خانانو د هغوي برخلاف ډېر کوششونه وکړل ولې بیا هم په دې ټوله علاقه کښې دومره ناقلارې او جوش راپیدا شو چې د فیرنګیانو د فوځونو یوه لویه حصه د خپل سرحدي مقاماتو د حفاظت دپاره بند پاتې شوه. مومندو او افریدو خو په ضد د فیرنګیانو د تنګولو کوششونه بدستور جاري وساتل او په هر طرف ئې د ماډ او د براؤن فوځونو ته هم په لارو او هم په څوکو کښې تکلیفونه او
تاوانونه ورکړل او د کوهاټ په طرف رابرټس د تګ راتګ په لاره باندې چپاوونه وکړل او د زیموختو قبیلې په ډېر جوش او زور سره د رابرټس د رسد رسانۍ په قافلو باندې حملې وکړې او د هغهٔ اوښان به ئې د څرولو د ځایونو نه په زور راوستل. دې سره څلور زره مسعود او وزیر په اوله جنورۍ انګریزي علاقې ته راکوز شول او د ټانک ښار ئې وسېزلو د دې وجه دا وه چې د فیرنګیانو فوځ د هغوي اوښان او څاروي په زور د باربردارۍ دپاره نیولي وو د دې لښکر په مقابله کښې جنرل ګاډبے پنځهٔ زره پیاده او دوه سوه سوارهٔ وویستل او د ډېرو جنګونو نه پس ئې هغوي په لسمه جنورۍ د انګریزي علاقې نه وویستل.
د دې مشکلاتو نه علاوه یو بل لوے مشکل فیرنګیانو ته د باربردارۍ دپاره د څاروو کمے وهٔ په اوله جنورۍ چې د لام لا هیله شپږ هفتې شوے وے او واؤرې هم لا نهٔ وے پرېوتې

چې د براؤن د فوځ د کمسریټ افسر په خپل یو رپورټ کښې ولیکل چې د فوځ اوښان په خیبر کښې بالکل تباه کیدو ته نزدې دي او کۀ چرې د یو څو ورځو دپاره هغوي میدانونو ته راکوز شول نو غالباً چې هغوي به ټول مړۀ شي او سپرلي له به د نورو اوښانو ضرورت پیښیږي. هم د دې قسم رپورټونه د کرمې د محاذ نه راغلل او د قندهار د محاذ حالت خو د دې دوؤ نه زیاتي خراب وۀ. د خوراک څښاک هر قسم سامان په سکهر او په بکهر کښې د باربردارۍ د څاروو د کمي په سبب سخا بویونه پریښودل. او په لاره په ټولو درو کښې د مړو اوښانو د بدبویۍ نه څوک په لاره تیریدے نشو. هر څومره چې د سول افسرانو د دې مشکلاتو د حل دپاره خپل وسونه وکړل او ټول وطن ئ د اوښانو د خرو او قچرو او د غوایانو په تلاش کښې چاپ کړو ولې هغوي د فوځ د ضروریاتو مطابق د څاروو په پیدا کولو او د رسد او د جنګ سامان محاذ ته په رسولو کښې ناکامیاب شول. د دې ټولو مشکلاتو نتیجه دا شوه چې د خوراک څښاک د سامان د کمي او د هسپتال د دارو او د نورو ضروریاتو په وخت باندې د نۀ رسیدو په سبب په سپاهیانو کښې قسما قسم رنځونه او بیمارۍ پیدا شوې او په هغوي کښې ډیر کسان هندوستان ته په واپس کیدو مجبور شو.

اګرچې ظاهربین او ناواقف خلقو ته دا شان ښکاریده چې انګریزي فوځ په هر لورې د افغانستان برخلاف بریے حاصل کړو او نن دے کۀ سبا هغوي به په کابل او په غزني او په هرات باندې پیش قدمي ته تیار شي ولې باخبره او ذمه وار انګریزي افسران د دې برنې بیان شوي مشکلاتو په وجه په ډیر غم او په فکر کښې پراتۀ وو. هغوي ته معلومه وه چې اګرچې د امیر صاحب د فوځونو د طرف نه نۀ خو مقابله شته او نۀ جنګ ولې د افغانستان کومه حصه چې فتح شوې وه په هغې باندې تر دومره مودې پورې قبضه او تصرف ساتل چې هغوي د خپلې منشا مطابق په امیر کابل باندې خپل شرطونه تسلیم کړي یوه ډیره مشکله مسئله وه. لارډ لیټن په دې خیال کښې وۀ چې په جلال اباد شتر ګردن او په قندهار باندې د قبضې کولو سره به د افغانستان حکومت مونږ ته د صلح درخواست وکړي او بیا به مونږ په امیر کابل باندې خپل شرطونه په زور ومنو ولې هرکله چې د دې ځایونو په اخستو هم د جنګ د ختمیدو څۀ آثار ښکاره نشو بلکې ورځ تر ورځ هغۀ ته په مخکښې مشکلات نور هم زیاتیدل نو اوس هغۀ پخپله د جنګ د ختمولو او افغانستان سره د یو خاص عهدنامې کولو کوشش راواخستو. چنانچه څۀ وخت چې هغۀ ته معلومه شوه چې هغه کابل نه لاړو او محمد یعقوب خان د هغۀ په ځاے امیر شو نو هغۀ سمدستي کمناري ته ولیکل چې تۀ په ډیر احتیاط یعقوب خان سره د خبرو اترو سلسله وخوځوه مګر چونکې یو خوا یعقوب خان پخپله فیرنګیانو سره د روغې کولو منشا نۀ وه ښکاره کړې او بل خوا دا خبره هم مشهوره وه چې یعقوب خان د انګریزانو نه د خپل ملک په دا شان د زیر و زبر کیدو او په هغې باندې د هغوي بې وجې د

حملې کولو په سبب سخت ناراض دے له دې کبله د لارډ لیټن دا شک وۀ چې ممکن ده چې یعقوب خان په دې وجوهاتو فیرنګیانو سره صلح ته تیار نشي. په دې سبب هغۀ د یعقوب خان د مخالفت او د جنګ په صورت کښې د کابل د تخت دپاره د امیر شیر علي خان ناسکه ورور ولي محمد خان خوښ کړو مګر دې سره د هغۀ دا تجویز وۀ چې وړومبے دې یعقوب خان سره خبرې اترې شروع شي. ولي محمد خان یو خودغرض او بې اصوله سړے وۀ هغۀ ته د خپلې ذاتي فائدې باندې د ملک او قام مفاد قربانول هیڅ شرم نۀ معلومیدو. چنانچه څۀ وخت چې هغه د لارډ لیټن د منشا نه خبر شو (څکه چې فیرنګیانو خو دا غوښتله چې دا تجویز دې بالکل خفیه نۀ وي بلکې ولي محمد خان او یعقوب خان دې دواړه د دې افواه په ذریعه خبر شي چې په دواړو کښې د انګریزانو د صلح د شرطونو په منلو کښې مقابله شروع شي) نو هغۀ انګریزي افسرانو ته دا خبر ورکړو چې کۀ چرې زۀ د کابل نه په تښتیدو او انګریزي فوځ ته په رارسیدو کښې کامیاب شوم نو په کومو شرطونو چې انګریزان ما تخت نشین کول غواړي نو هغه شرطونه به ماته منظور وي.

د صلح د دې تجویزونو باوجود فیرنګیانو په کابل باندې د حملې کولو په تیاری کښې څۀ کمے رانۀ وستو حالانکې هغوي ته معلومه وه چې شیر علي خان وفات شوے دے او د لارډ لیټن د اعلان مطابق د نور جنګ او د مزید پیش قدمۍ هیڅ ضرورت نۀ وۀ څکه چې هغۀ خو دا صفا وئیلي وو چې د حکومت برطانیه جنګ صرف شیر علي خان سره دے. او د افغانستان د عام خلقو په سر د هغۀ د کارونو هیڅ ذمه واري نشته مګر د لارډ لیټن مزید جارحانه کارروایۍ دنیا ته دا ثابته کړه چې دا جنګ فیرنګیانو صرف د دې غرض دپاره شروع کړے وۀ چې هغوي په حکومت افغانستان باندې خپل هغه شرطونه تسلیم کړي چې کوم هغوي د ډیرې مودې نه په زړۀ کښې ساتلي وو او امیر شیر علي خان د افغانستان او د پښتون قوم د ازادۍ په خاطر د هغې منلو ته تیار نۀ وۀ.

اګرچې شیر علي خان وفات شوے وۀ او یعقوب خان لا د فیرنګیانو برخلاف څۀ منظمه کارروائي نۀ وه شروع کړې مګر قبائل او د اولس عام خلق اوس ورو ورو رابیداریدل. په دې ورځو کښې د جلال اباد د علاقې خوګیانو او مومندو دا شان چپاوونه بیا په فیرنګیانو باندې ځاے په ځاے وکړل چې هغوي ئ یوه شپه هم قلاریدو ته پرې نښودل. عصمت الله خان نومے یو لوے خان د لغمان علاقې ته د مارچ په میاشت کښې راکوز شوے وۀ او د خوګیانو یو لوے لښکر ئ د فتح اباد په خوا کښې راجمع کړے وۀ. براؤن د خپل فوځ لویې لویې دستې د هغۀ برخلاف ولیږلې او د لویو لویو معرکو نه پس چې په هغې کښې د فریقینو ډیر نقصانات وشول هغه د خوګیانو په منتشر کولو کښې کامیاب شو. د دې نه پس هغه په دولسم اپریل د فوځ یوه لویه حصه ځان سره واخسته او د ګندمک په طرف ئ پیشقدمي

وکړه. براؤن په څوارلسم تاریخ ګندمک ته ورسیدو ولې هغه لا په مشکله په هغه مقام کښې دیره نیولې وه چې هغهٔ ته خبر راغلو چې د لال پورې او د جلال اباد په علاقه بیا د مومندو لښکرې راجمع شوي دي او په فیرنګیانو باندې حملې کولو ته ګوابښیږي. لږې ورځې پس د مومندو دا لښکر او انګریزي فوځونه د کم ډکې په خوا کښې مخامخ شول او د دواړو فریقو نه ډیر نقصان وشو. د براؤن په شان رابرټس هم د علي خیلو په طرف څهٔ فوځونه او توپخانه واستوله او دا شان فوځي تیارۍ ئې شروع کړې لکه چې هغه د کرمې د طرف نه او براؤن د ګندمک د طرف نه په کابل باندې په اوړې کښې ورخیژي.

دیخوا خو دا جنګي تیارۍ شروع وې او بل خوا یعقوب خان سره د روغې دپاره هم کوششونه جاري وو. ولي محمد خان د کابل د تخت په طمع د جنورۍ په اخر اخر کښې کرمي ته رابرټس له ځان راورسولو ولې هغهٔ ولي محمد خان جلال اباد ته براؤن او کمناري له واستولو ولې په دې منځکښې وائسراے په دې نتیجه ورسیدو چې په ځاے د دې چې انګریزان د خپلې خوښې یو سړے په پښتنو باندې امیر کړي دا به ښه وي چې هم یعقوب خان سره د صلح شرطونه فیصله شي. هغهٔ ته د شاه شجاع د وخت ټول واقعات را په یاد شو. هغهٔ محسوسه کړه چې کهٔ چرې قبائل په دې پوهه شو چې ولي محمد خان د فیرنګیانو په زور په مونږ امیر شوے دے نو هغه به یوه ورځ هم په هغوي حکومت ونکړې شي. له دې کبله لارډ لیټن قطعي طور دا رائ قائمه کړه چې ولي محمد خان په خپل ځاے پریښودل پکار دي او صرف یعقوب خان سره خبرې کول مناسب دي.

د لارډ لیټن د دې فیصلې مطابق کمناري یعقوب خان ته د صلح تجویز ولیږلو اګر چې یعقوب خان په ابتدا کښې فیرنګیانو سره په روغه کولو څهٔ ډیر رضا نهٔ معلومیدو مګر چونکې په ټول افغانستان کښې د فیرنګیانو د دې جنګ په سبب سخت اړے ګړے پیدا شوے وۀ او د حکومت او د اندروني انتظام ټوله سلسله درهم برهم شوې وه له دې کبله هغهٔ په شلمه فرورۍ 1879ء د انګریزانو په منشا او د هغوي د صلح په شرطونو باندې د ځان د پوهولو دپاره کمناري ته د هغهٔ د تجویز په جواب کښې خط ولیکلو چې زهٔ خپل ځان صرف د پلار او د فیرنګیانو په منځکښې د صلح کولو دپاره پیش کوم ولې په یویشتمه فرورۍ شیر علي خان وفات شو او په شپږ ویشتم د هغهٔ د مرګ خبر کابل ته راورسیدو او په اتویشتم یعقوب خان کمناري ته په جلال اباد کښې د دې اطلاع ورکړه. د کمناري په وینا لارډ لیټن هغهٔ ته د عذرخواهي خط ولیکلو او کمناري ته ئې ولیکل چې په لاندیني شرطونو باندې تهٔ د حکومت برطانیه د طرف نه یعقوب خان سره د صلح خبرې اترې شروع کړه.

☆ امیر یعقوب خان دې د خیبر او د میچنی په درو باندې خپله قبضه پریږدي او کوم ازاد قبائل چې د هغې درو په خواوشا کښې وسیږي هغوي سره دې هغه د مخکښې دپاره

هيڅ تعلق نهٔ ساتي.

☆ د کرمې په ټوله علاقه باندې يعنې د ټل نه عين د شترګردن تر سوکې پورې د پشين او د سبي په علاقو به آئنده فيرنګيان قابضان او متصرف وي.

☆ د حکومت افغانستان خارجي تعلقات به آئنده د حکومت برطانيه د منشا او د مشورې د لاندې وي.

☆ مخصوص يورپين برټش افسرانو ته به د مناسب محافظ فوځي دستو سره د افغانستان په هغې ټولو مقاماتو کښې د وسيدو اجازت وي چې کوم حکومت هند د هغوي دپاره آئنده خوښوي.

کمناري د دې شرطونو سرکاري اطلاع يعقوب خان ته ورکړه دا شرطونه په حقيقت کښې د افغان دپاره ډير رسوا کن او ذليل وو. شير علي خان خپل ځان او خپل مئين هم د دې دپاره قربان کړي وو چې فيرنګيانو په هغهٔ باندې د ډيرې مودې نه صرف د شرط نمبر څلورم د منلو دپاره دباوؤنه کول. ولې دا شرطونه خو د افغانستان د ازادی او د خودمختاری دپاره بالکل زهر قاتل وو. شير علي خان ته خو صرف شرط نمبر څلورم پيش شوے وۀ او د هغې پہ تسليمولو کښې هم هغهٔ ته د افغانستان تباهي ښکاريدله مګر اوس چې شير علي خان مړ شو نو فيرنګيانو ته دا يوه نادره موقع د ټولو پښتنو په سينه باندې د ډکې تماچې د نيغولو په لاس ورغله. د خيبر او ميچنی، د کرمې او د پشين درې څلور واړه داسې لارې دي چې کهٔ يو حمله آور په افغانستان باندې د پيش قدمی دپاره د دې درو نه خپل فوځونه تير کړي نو هغه بې تکليفه په افغانستان کښې تر ډير لرې لرې پورې بې مقابلې تلې شي. او د جلال اباد، کابل، غزني او قندهار په لويو لويو علاقو باندې قبضه کولے شي. دا ټولې درې د احمد شاه دراني د وخت نه د افغانستان د حکومت دِ لاندې وے او د هغې نه ګير چاپيره قبيلې او قومونه ټول پښتانهٔ وو. مګر اوس لارډ ليټن دا علاقې د پښتنو د حکومت نه د شوکولو فيصله وکړه. حالانکې هغهٔ د ټولې دنيا په مخکښې دا اعلان کړے وۀ چې فيرنګيان دا جنګ صرف شير علي خان له د سزا ورکولو دپاره کوي. او د افغانستان خلقو او سردارانو سره د هغوي هيڅ جګړه نشته. د دې اعلان مطابق خو مناسب دا وو چې څهٔ وخت فيرنګيانو ته دا خبر شوے وے چې شير علي خان وفات شو نو هغوي يعقوب خان سره غير مشروط طريقه باندې د دوستی نوې عهدنامه کړې وے او قبل د صلح نه ئ خپل ټول فوځونه د افغانستان نه واپس بللے وے مګر لکه چې څرنګ وړومبے ذکر شوے دے د لارډ ليټن منشا خو په افغانستان کښې د انګريزانو د حکومت سياسي اقتدار قائمول وو نه چې صرف شير علي خان له سزا ورکول. يعقوب خان اګر چې د شير علي خان زوے وۀ مګر چونکې هغه د يوې وړدې مودې د قيد نه پس اوس راخلاص شوے وۀ په هغهٔ کښې نهٔ خو بهادري وه او نهٔ هغه زړور شوب

یا د ایثار هغه ماده وه چې د کوم په سبب هغهٔ خپل پلار له په یوه زمانه کښې د عبدالرحمٰن خان او د اعظم خان برخلاف د کابل د تخت په ګټلو کښې زبردست امداد ورکړے وهٔ. د قید تکلیفونو د ملک اړي کړي د خزانې تشوالي د هغهٔ په همت او قوت ارادي باندې ډیر خراب اثر پیدا کړے وهٔ. په هغهٔ کښې د پښتنو د شاهي خاندان هغه د ازادو لوے والے او د قومي ننګ او د عزت خیال نهٔ وهٔ پاتې شوے چې د چا نه بغیر یو خودمختار او ازاد قوم هم د یو بې انصاف، بې اصوله، بې کرکې او د یو زورور حکومت په ګاونډ کښې تر ډیرې مودې پورې بچ نشي پاتې کیدے. چونکې هغه د بندي خانې نه نیغ د تاج و تخت مالک شوے وهٔ له دې کبله هغهٔ ته د نورو جنګونو تکلیفونه زغمل او د قام په خودداری باندې د خپل ځان قربانول مشکل معلومیدل. دې کښې هیڅ شک و شبه نشته چې کهٔ چرې په دې موقع یعقوب خان لږ شان خپل زړهٔ مضبوط کړے وے او د خپل ملک د جنګجو او د توریالو قبائلو د مشرۍ دپاره ئې د فیرنګیانو په مقابله کښې یوځل ملا تړلے وے نو اګر چې هغهٔ ته به ډیر مشکلات په لاره کښې پیښ شوي وو او ممکن ده چې د څهٔ وخت دپاره به کابل هم د هغهٔ د لاس نه وتے وهٔ او دا هم ممکن ده چې فیرنګیانو د هغهٔ په ځاے د خپل لاس یو ګوډاګے د کابل په تخت کښېنولے وے ولې په اخر کښې به هغه یو لوے قومي رهنما جوړ شوے وهٔ او هغهٔ او د هغهٔ ډلې به برے موندے وهٔ. د افغانستان حکومت به د همیش دپاره د هغهٔ په اولاد کښې پاتې شوے وهٔ او د ملک او د قوم ازادي به هم برقرار پاتې شوې وه. دا وخت هم د جمرود نه عین تر ګندمک پورې د براؤن د آمدورفت لاره د قبائلو د لاسه په سخت غیر محفوظ حالت کښې پرته وه او د دې نه علاوه د جمرود نه تر درهٔ ګومل پورې ټول د پښتنو ازاد قبائل د فیرنګیانو برخلاف راوچت شوي وو. او د افغانستان د یو سر نه تر بله سره پورې خلق د جهاد دپاره بالکل تیار ناست وو مګر افسوس دے چې یعقوب خان په زړهٔ کمزورے شوے وهٔ او لکه څرنګ چې هر کمزورے سړے د خپل مقصد په حصول کښې ناکامیاب وي دغه شان یعقوب خان هم بالاخر په خپلې خودغرضۍ کښې فیل شو او د افغانستان حکومت د همیش دپاره د هغهٔ د خاندان د لاس نه ووتو.

هر کله چې یعقوب خان ته دا شرطونه پیش شول نو د هغهٔ سردارانو د افغانستان د یو سپق زمکې د ورکولو هم مخالفت وکړو. مګر په دولسم مارچ یعقوب خان کمناري ته د څلورم شرط متعلق دومره ولیکل چې زهٔ صرف په کابل کښې د یو یورپین افسر په مقرریدلو باندې رضا یم. دریم نمبر شرط هغهٔ منظور نهٔ کړو او د اول او دویم شرط په حقله ئې ورته ولیکل چې هر کله د افغانستان خارجه پالیسي د هغهٔ په لاس کښې وي او یو برټش افسر پخپله د هغه پالیسۍ د نګرانۍ دپاره په کابل کښې موجود وې نو دا پکار دي چې هغوي د افغانستان مقبوضات زیات کړي نه چې د هغوي په زړو علاقو باندې پخپله قبضه وکړي.

يعقوب خان به يا پوهه وۀ او يا به هغۀ ارادتاً په دې خبره سترګې پټولې چې لارډ ليټن خو په دې درو ځکه قبضه کوله چې هغۀ انګريزي فوځونو ته د مخکښې دپاره په افغانستان باندې د پيشقدمۍ دپاره او په هغوي باندې د خپلو خبرو د قبلولو دپاره لاره صفا کوله او د دې درو ازاد پښتانۀ هغۀ ځکه د فيرنګيانو د اثر لاندې راوستل چې د پښتنو حکومت سره د هغوي تار وشليږي او د مخکښې دپاره هغوي د انګريزي فوځونو په لاره کښې دا شان نۀ مزاحم کيږي لکه چې په دې جنګ کښې هغوي وو.

لارډ ليټن د يعقوب خان په منشا په خپلو شرطونو کښې خو يو ترميم هم ونکړو ولې دومره ئې وکړل چې کوم رعايات هغۀ شير علي خان سره د چيمبرلين په ذريعه کول غوښتل هغه ئې يعقوب خان له هم ورکول منظور کړل. په دې اثنا کښې کمناري يعقوب خان ته دا هم وليکل چې د زياتې بحث مباحثې دپاره به دا مناسب وي چې زۀ کابل ته درشم. يعقوب خان دا تجويز منظور کړو. خو څۀ وخت چې د کابل خلقو ته دا معلومه شوه چې يو فيرنګے افسر کابل ته د صلح د خبرو اترو دپاره راروان دے نو په هغوي کښې يو ډير سخت جوش او بې چينې او ناراضګي پيدا شوه. يعقوب خان چې دا وليدل نو په ډير شش و پنج کښې شو اخر هغۀ دا خيال وکړو چې هسې نه چې کمناري ته د کابل د خلقو د لاسه څۀ نقصان ورسي له دې کبله هغۀ دا فيصله وکړه چې زۀ پخپله ګندمک ته کمناري سره د خبرو اترو کولو دپاره ځم. چنانچه په دويم مئ هغه د بالاحصار نه روان شو په اتم مئ کمناري د فوځ يوې دستې سره د ګندمک نه شپږ ميله وړاندې د هغۀ استقبال دپاره لاړو. دغه شان براؤن هم د خپل کيمپ نه څلور ميله وړاندې د هغۀ استقبال وکړو او يعقوب خان څلور سوه سرو سره ګندمک ته راورسيدو. د لسم نه تر اوولسم تاريخ پورې د کمناري او د يعقوب خان په منځکښې په دې شرطونو باندې جرګې وشوې مګر څۀ نتيجه ئې راونۀ وتله. په دې جرګو کښې يعقوب خان سره د هغۀ دوه افسران يو مستوفي او بل داؤد شاه سپه سالار هم شامل وو او کوم شرطونه چې هغوي په ابتدا کښې کمناري ته پيش کړي وو دا درې واړه په هغې ټينګ ولاړ وو او د افغانستان يو ليشت زمکې پريښودو ته تيار نۀ وو مګر څۀ وخت چې کمناري په دې پوهه شو چې په دې شرطونو باندې د دې درې واړو رضا کول ناممکن دي نو هغۀ يعقوب خان سره د بيلې جرګې کولو تجويز پيش کړو. په دې بيله جرګه کښې يعقوب خان د کمناري خبرو ته هډو ټينګ نۀ وۀ. هغۀ د فيرنګيانو ټول شرطونه په ځان ومنل صرف د کرمې د علاقې مغربي سرحد د شترګردن د سوکې په ځاے علي خيل مقرر شو او د سبي او پشين او د کرمې د علاقو متعلق دا فيصله وشوه چې دا درې واړه علاقې به يعقوب خان فيرنګيانو ته تفويض کړي او هغوي به دا علاقې باقاعده مسخر نۀ ګڼي . د دې نه علاوه نور واړۀ واړۀ شرطونه هم يعقوب خان په ځان باندې د فيرنګيانو ومنل او د پښتنو په تاريخ کښې ئې اول ځل د دې

عهدنامې په ذريعه هغهٔ تړولې درې فيرنگيانو ته حواله کړې په کومو باندې چې د تړول افغانستان د حفاظت دارومدار وهٔ. دا عهدنامه په شلم مئ 1879ء د گندمک په مقام دستخط شوه او د يعقوب خان او د هغهٔ د خاندان په قسمت ئې د تباهی مهر ولگولو. دا عهدنامه مونږ په انگريزی کښې لاندې درج کوؤ :

" The following Articles of the treaty for the restoration of peace and amicable relations have been agreed upon between the British Govt; and His Highness Muhammad Yaqub Khan, Amir of Afghanistan and its dependencies:-

*Article No.1* : From the day of the exchange of the ratification of the present Treaty there shall be perpetual peace and friendship between the British Govt; on the one part and His Highness the Amir of Afghanistan and its dependencies, and his successors, on the other.

*Article No.2* : His Highness the Amir of Afghanistan and its dependencies engages on the exchange of the ratification of this Treaty, to publish a full and complete
amnesty, absolving all his subjects from any responsibility for intercourse with the British Forces during the war, and to guarantee and protect all persons of whatever degree from any punishment or molestation on that account.

*Article No.3* : His Highness the Amir of Afghanistan and its dependencies agrees to conduct his relations with Foreign states, in accordance with the advise and wishes of the British Govt;. His Highness the Amir will enter into no engagements with Foreign States, and will not take up arms against any Foreign State, except with the concurrence of the British Govt. On these conditions the British Govt; will support the Amir against and foreign aggression with money, arms or troops, to be employed in whatsoever manner the British Govt; may judge best for this purpose. Should British troops at any time enter Afghanistan for the purpose of repelling foreign aggression, they will return to their stations in British territory as soon as the object for which they entered has been accomplished.

*Article No.4* : With a view to the maintenance of the direct and intimate relations now established between the British Govt; and His Highness the Amir of Afghanistan and for the better protection of the frontiers of His Highness dominions, it is agreed that a British Representative shall reside at Kabul, with a suitable escort in a place of residence appropriate to his rank and dignity. It is also agreed that the British Govt shall have the right to depute British Agents with suitable escorts to the Afghan frontiers, whensoever this may be considered necessary by the British Govt; in the interests of both states, on the occurrence of any important external fact. His Highness the Amir of Afghanistan may on his part depute an Agent to reside at the court of His Excellency the Viceroy and Governor General of India, and at such other places in British India as may be similarly agreed upon.

*Article No. 5* : His Highness the Amir of Afghanistan and its dependencies guarantees the personal safety and honourable treatment of British Agents within his jurisdiction, and the British Govt on its part undertakes that its Agents shall never in any way interfere with the internal administration of His Highness dominions.

*Article No.6* : His Highness the Amir of Afghanistan and its dependencies undertakes on behalf of himself and his successors to offer no impediment to British subjects peacefully trading within his dominions so long as they do so with the permission of the British Govt; and in accordance with such arrangements as may be mutually agreed upon from time to time between to two governments.

*Article No.7* : In order that the passage of trade between the territories of the British Govt and His Highness the Amir of Afghanistan may be open and uninterrupted, His Highness the Amir of Afghanistan agrees to use his best endeavours to ensure the protection of traders and to facilitate the transit of goods along the well known customary roads of Afghanistan. These roads shall be improved and maintained in such manner as the two Governments may decide to be most expedient for the general convenience of traffic, and under such financial arrangements as may be mutually determined upon between them. The arrangements made for the maintenance and security of the aforesaid roads, for the settlement of the duties to be levied upon merchandise carried over these roads, and for the general protection and development of trade with and through the dominions of His Highness will be stated in a separate commercial Treaty, to be concluded within one year, due regard being given to the state of the country.

*Article No. 8* : With a view of facilitate communications between the allied Governments and to aid and develop intercourse and commercial relations between the two countries, it is hereby agreed that a line of telegraph from Kurram to Kabul shall be constructed by and at the cost of the British Govt; and the Amir of Afghanistan hereby undertakes to provide for the protection of this telegraph line.

*Article No.9* : In consideration of the renewal of a friendly alliance between the two states which has been attested and secured by the forgoing Articles, the British Govt restores to His Highness the Amir of Afghanistan and its dependencies the towns of Kandahar and Jalalabad, with all the territory now in possesion of the British armies, excepting the districts of Kurram, Pashin and Sibi. His Highness the Amir of Afghanistan and its dependencies agrees on his part that the districts of Kurran, Pashin and Sibi according to the limits defined in the schedule annexed, shall remain under the protection and administrative control of the British govt; that is to say the aforesaid districts shall be treated as assigned districts, and shall not be considered as permanently severed from the the limits of the Afghan Kingdom. The revenues of these districts, after deducing the charge of the civil administration shall be paid to His Highness the Amir.

The British Government will retain in its own hands the control of the Khyber and Michini Passes, which is between the Peshawar and Jalalabad districts, and of all relations with the independent tribes of the territory directly connected with these pases.

*Article No.10* : For the further support of his Highness the Amir in the recovery and maintenance of his legitimate authority and in consideration of the efficient fulfilment in their

entirely of the engagments stipulated by the foregoing Articals, the British Government agrees to pay to His Highness the Amir, and to his successors an annual subsidy of six laks of Rupees.

Done at Gandamak this 26th day of May, 1879 corresponding with the 4th day of the month of Jamadi-ussani 1296 A.H.

Sd. Amir Mohd. Yaqub Khan
Sd. N. Cavagnari, Major
Political officer on special duty
Sd. Lytton

This treaty was ratified by His Excellency the Viceroy and Governor General of India, at Shimla, on Friday, this 30th day of May 1879.

Sd. A.C.Lyall
Secy. to the Govt. of India
Foreign Deptt.

ترجمه: په لاندیني شرطونو باندې دا عهدنامه د حکومت برطانیه او د هز هائي نس محمد یعقوب خان امیر افغانستان او ملحقه ممالک تر منځ د صلح او د دوستۍ د تعلقاتو د قائمولو دپاره بالاتفاق وشوه.

اول شرط : د کومې ورځې نه چې دواړه فریقه په دې عهدنامه باندې مهر تصدیق ولګوي نو د هغې ورځې نه به یو خوا د حکومت برطانیه او بل خوا د هز هائي نس امیر افغانستان او ملحقه ممالک او د هغهٔ د جانشینانو تر منځ دائمي صلح او دوستي وي.

دویم شرط : هز هائي نس امیر افغانستان او ملحقه ممالک دا اقرار کوي چې هر کله دواړه فریقه په دې عهدنامه باندې مهر تصدیق ولګوي نو هغه به پوره او مکمل د سر سلامتۍ یو اعلان د خپل رعیت د هغه ټولو کسانو په حقله شائع کوي او هغوي به بالکل بري الذمه کوي چې چا د دې جنګ په دوران کښې انګریزي فوځونو سره راشه درشه ساتلې ده او د هر چا هر څهٔ درجه چې وي هغوي به ټول د هر قسم سزا او د نقصان نه بچ کوي.

دریم شرط : هز هائي نس امیر افغانستان و ملحقات دا اقرار کوي چې هغې به خپل تعلقات پردو حکومتونو سره د حکومت برطانیه په صلاح مشوره ساتي. هز هائي نس امیر افغانستان به یو پردي حکومت سره عهدنامه نهٔ کوي او نهٔ به د یو پردي حکومت برخلاف

وسله راخلي. تر څو پورې چې حکومت برطانيه په دې متفق نهٔ وي. په دې شرطونو به حکومت برطانيه د روپو، وسلو يا د فوځونو په ذريعه د ټولو بيروني حملو برخلاف امداد کوي. دا امدادي فوځونه به په داسې طريقه استعماليږي چې څرنګ حکومت برطانيه ته د دې غرض د حاصلولو دپاره مناسب ښکاره کيږي. هر چرې چې انګريزي فوځونه په افغانستان کښې د بيروني حملې د دفع کولو دپاره داخل شي نوڅهٔ وخت چې هغه مدعا چې د کوم دپاره هغوي داخل شوي وي سر ته ورسي نو هغوي به سمدستي انګريزي علاقې ته خپل خپل ځايونو ته واپس کيږي.

څلورم شرط : د دې غرض دپاره چې حکومت برطانيه او هز هائي نس په منځکښې هغه نزدې او بلاواسطه تعلقات چې کوم اوس قائم شوي دي بدستور جاري پاتې شي او د دې دپاره چې د هز هائي نس د مقبوضاتو د سرحدونو په ښه طريقه حفاظت وشي. فريقين دا اقرار کوي چې په کابل کښې به يو انګريزي نمائنده وسيږي او هغهٔ سره به دومره محافظه فوځې دسته وي او په داسې ځاے کښې به وسيږي چې د هغهٔ د درجې او وقار سره مناسب وي. دا خبره هم فريقين منظوروي چې هر کله يوه غټه بيروني معامله پيښه شي نو حکومت برطانيه ته به دا حق حاصل وي چې هغوي د افغانستان سرحدونو ته انګريزي ايجنټان سره د مناسب محافظو دستو وليږي خو چې هر کله دا امر حکومت برطانيه ته د دواړو حکومتونو د مفادو دپاره ضروري ښکاره شي. هز هائي نس امير افغانستان به هم خپل يو ايجنټ د هندوستان د ګورنر جنرل په دربار کښې وسيدو دپاره مقررولے شي او د هندوستان په هغې نورو مقاماتو کښې هم چې په کوم باندې فريقين رضامند شي.

پنځم شرط : هز هائي نس امير افغانستان و ملحقات په خپل ملک کښې د انګريزي ايجنټانو د ذات د سلامتۍ او د دروند سلوک ذمه واري اخلي او حکومت برطانيه د خپل طرف نه دا اقرار کوي چې د هغوي ايجنټان به په هيڅ وجه د هز هائي نس د ملک په اندروني انتظام کښې چرې دخل نهٔ ورکوي.

شپږم شرط : هز هائي نس امير افغانستان و ملحقات د خپل ځان او د خپلو جانشينانو د طرف نه دا اقرار کوي چې هغوي به په خپل ملک کښې دننه د انګريزي رعايا په لاره کښې هيڅ مشکلات نهٔ پيدا کوي چې هغوي د هغوي په ممالکو کښې په امن سره تجارت وکړي تر څو پورې چې هغوي ته د حکومت برطانيه د طرف نه په دې باره کښې اجازت حاصل وي او هغوي د هغې سمجهوتې مطابق خپل عمل ساتي چې کوم د دواړو حکومتونو په منځکښې وقتاً فوقتاً وشي.

اووم شرط : د دې غرض دپاره چې د حکومت برطانيه او د هز هائي نس امير افغانستان د علاقو تر منځ د تجارت تګ راتګ مسلسل او جاري وي نو هز هائي نس امير افغانستان

اقرار کوي چې زۀ به د سوداګرو خلقو د حفاظت دپاره خپل بهترين وس کوم او د افغانستان په عام او مشهورو لارو باندې به د تجارت د مال د تيريدو او د راتيريدو دپاره اسانتيا پيدا کوم. د دې لارو ترقي او په درست حالت کښې ساتنه به په داسې طريقه کيږي چې کومه د دواړو حکومتونو په خيال کښې د عام آمدورفت د اسانتيا دپاره ډيره موزونه وي. او د دې دپاره به مالي انتظام په باهمي رضامندئ سره کيږي. د دې لارو د حفاظت او په درست حالت کښې د ساتلو مفصل انتظام او په دې لارو باندې چې کوم د سوداګرۍ مال تيريږي په هغې باندې د محصول اخستو سوال، او د هز هائي نس په ممالکو کښې چې کوم تجارت کيږي د هغې د ترقي او د حفاظت دپاره عام انتظام وغيره به په يو جدا تجارتي معاهده کښې ذکر کيږي چې هغه به د ملک د نورو حالاتو مدنظر په يو کال کښې دننه د فريقينو په منځکښې کيږي.

اتم شرط : د دې دواړو اتحادي حکومتونو په منځکښې د آمدورفت د اسانتيا دپاره او د دې دواړو حکومتونو په منځکښې د تجارتي تعلقاتو او ټګ راټګ د ترقي او د امداد دپاره فريقين دا اقرار کوي چې د کرمې نه تر کابل پورې به د تار برقي يو تار حکومت برطانيه په خپل خرڅ جوړوي او امير افغانستان به د دې تار د حفاظت انتظام په خپله ذمه اخلي.

نهم شرط : په دې خاطر چې د دواړو حکومتونو ترمنځ د دوستئ تعلق اوس بيا د نوي سره قائم شو چې د دې عهدنامې تير شوي شرطونه ئ تصديق کوي او مضبوطوي ئ. له دې کبله حکومت برطانيه هز هائي نس امير افغانستان و ملحقات ته د قندهار او د جلال اباد ښارونه سره د هغې ټولو علاقو چې دا وخت د انګريزي فوځونو په قبضه کښې دي واپس ورکوي ماسوائ د کرمې، پشين او د سبي د اضلاعو نه. هز هائي نس امير افغانستان و ملحقات د خپل طرف نه دا لوظ کوي چې د کرمې پشين او سبي اضلاع به په مطابق د هغې حدودو چې کوم مشموله جدول کښې درج د حکومت برطانيه د حفاظت او د انتظامي تسلط لاندې وي. يعنې دا اضلاع به تفويض شوے اضلاع ګڼلے شي. او د افغان حکومت نه به مستقل طور سره پريکړې نۀ تصور کيږي، د دې اضلاع ماليه به پس د سول انتظام د خرڅ د ايستو نه هز هائي نس امير ته ورکيدے شي.

حکومت برطانيه به د ميچنی او د خيبر د درو انتظام چې د پيښور او د جلال اباد د اضلاعو په منځکښې پرتې دي په خپل لاس کښې ساتي او کوم ازاد قبائل چې د دې درو سره بلاواسطه تعلق لري هغوي سره به هم د ټګ راټګ انتظام پخپله کوي.

لسم شرط : د دې غرض دپاره چې حکومت برطانيه هز هائي نس امير سره د خپلو جائزو اختياراتو په حاصلولو کښې او په سنبالولو کښې نور امداد وکړي د دې دپاره هم چې کوم اقرارونه په دې شرطونو کښې طے شوي دي پوره طور سره تکميل ته ورسي. هغوي هز هائي

نس امیر او د هغهٔ جانشینانو ته د شپږ لکه روپو سالانه امداد ورکولو اقرار کوي.

دا عهدنامه طے شوه په مقام د گندمک نن په شپږویشتم مئ 1879ء مطابق د شلورم تاریخ د جمادي الثاني 1296هجري قمري

دستخط امیر محمد یعقوب خان

دستخط این کیوگنري میجر پولیټیکل افسر کار خاص

دستخط لیټن

دا عهد نامه هز ایکسي لنسي وائسرائے و گورنر جنرل هندوستان د جمعې په ورځ په دیرشم تاریخ د مئ 1879ء په مقام د شملې تصدیق کړه.

دستخط اے سي لائل

سیکرټري حکومت هند محکمه (بدیشي) خارجه

کمناري په درویشتمه مئ لارډ لیټن ته په یو خط کښې د دې عهدنامې په شرطونو باندې امیر محمد یعقوب خان سره د بحث مباحثې متعلق په ډیر فخر سره دا شان لیکلي دي "د هغوي (یعنې د یعقوب خان) دلائل ټول دومره کمزوري او بې مطلبه وو چې ما سمدستي په خپل زړهٔ کښې دا فیصله وکړه چې دا ټوله معامله دا شان گنډل پکار دي لکه چې ځوک د سرحد د یوې قبیلې خهٔ ډیره معمولي شان خبره کوي" ولې لږه موده پس د راتلونکو واقعاتو نه هغهٔ ته د خپلو لافو کچه والے په ښهٔ شان سره ثابت شو او لارډ لیټن ته هم معلومه شوه چې کومه رائ امیر شیر علي خان مرحوم او د هغهٔ زړو او تجربه کارانو وزیرانو او سردارانو په کابل او د افغانستان په نورو مقاماتو کښې د انگریزي پولیټیکل افسرانو د تقررۍ برخلاف په نیک نیتۍ ورکړې وه هغه درست وه او د لارډ سالسبري نه تر کمناري پورې هر انگریزي سیاستدان چې چا په زور په شیر علي خان باندې دا شرطونه منظورول غوښتل هغوي په غلطه وو. بهرصورت په دې عهدنامه باندې د هندوستان په ټولو فیرنگیانو کښې ډیرې خوشحالۍ وشوې او په انگلستان کښې هم ډسریلي او د هغهٔ وزیرانو د خپلې پالیسۍ په کامیابۍ باندې اطمینان ښکاره کړو. ځکه چې د هغوي دا یقین راغلو چې اوس ټول افغانستان دا شان زمونږ په قابو کښې راغلو چې د هغهٔ زمونږ د پنجې نه آئنده وتل قریب قریب ناممکن دي. د ټولو نه زیاته د هغوي په دې خبره ډیره تسلي وشوه چې هر څومره لارې او درې چې د هندوستان نه په افغانستان کښې د فوځي پیش قدمو دپاره وے هغه ټولې د فیرنگیانو په لاس کښې راغلې او اوس فیرنگیان په لږ نه لږ وخت کښې د افغانستان په هر یو ښار باندې بلا تکلیف خپل فوځونه وروړاندې کولے شي.

د گندمک د دې عهدنامې نه وړومبے د انگریزانو د هر فوځي مرکز او د افغانستان د سرحد په منځکښې د مشکل او دشوارگزار غرونو یوه وړده سلسله پرته وه او په دې غرونو

کښې دا شان پښتانهٔ قبائل وسیدل چې د انګریزي فوځونو دپاره د هغوي نه تیریدل او د افغانستان په اصلي علاقه کښې ورننوتل ځان له یوه ډیره مشکله مسئله وه. ولې په دې عهدنامه کښې یعقوب خان دا ټولې اهمې درې او په هغې کښې وسیدونکي توریالي او جنګجو پښتانهٔ قبائل فیرنګیانو ته حواله کړل او د افغانستان حکومت ئې د هندوستان د طرف نه په سخته خطره کښې واچولو. د صلح کیدو نه لږه موده پس د جنرل رابرټس فوځونه واپس شلوزان ته چې په بره کرمه کښې واقع دے راکوز شول. او یوه مستقله چاونی ئې په هغه ځاے کښې د فوځ د وسیدو دپاره واچوله. ولې د سټورټ فوځونه د ګرمی په سبب په قندهار کښې پاتې شول او مخکښې ژمي ته ئې د کوئټې په لوري د راتلو نیت وکړو. د بلوولف د فوځ د ګندمک د دې عهدنامې نه وروستو د انګریزانو د هر فوځي مرکز او د افغانستان د سرحد په منځکښې د مشکل او دشوارګزار غرونو یوه وږده سلسله پرته وه او په دې غرونو کښې دا شان پښتانهٔ قبائل وسیدل چې د انګریزي فوځونو دپاره د هغوي نه تیریدل او د افغانستان په اصلي علاقه کښې ورننوتل ځان له یوه ډیره مشکله مسئله وه. ولې په دې عهدنامه کښې یعقوب خان دا ټولې اهمې درې او په هغې کښې وسیدونکي توریالي او جنګجو پښتانهٔ قبائل فیرنګیانو ته حواله کړل او د افغانستان حکومت ئې د هندوستان د طرف نه په سخته خطره کښې واچولو. د صلح کیدو نه لږه موده پس د جنرل رابرټس فوځونه واپس شلوزان ته چې په بره کرمه کښې واقع دے راکوز شول. او یوه مستقله چاونی ئې په هغه ځاے کښې د فوځ د وسیدو دپاره واچوله. ولې د سټورټ فوځونه د ګرمی په سبب په قندهار کښې پاتې شول او مخکښې ژمي ته ئې د کوئټې په لوري د راتلو نیت وکړو. د بلوولف د فوځ حصه د دې نه ډیر وروستو په فرورۍ او مارچ کښې د خوراک د کمي په سبب هندوستان ته واپس راغلې وه.

# شلم باب

د کمناري سره د خپل سکتر مستر جينکنز او ډاکټر کيلي او خپلې محافظې دستې په اوولسم جولائي 1879ء کښې کابل ته تلل، د يعقوب خان استقبال دپاره راوتل، په اندروني معاملو کښې د کمناري لاس وهل، فوځ کښې د تنخواه په سبب خفګان، سالار داؤد شاه او جرنيل کريم خان سره د سپاهيانو جنګ، د سپاهيانو مخه انګريزي سفارت خانې ته د فرياد دپاره، د سفارت خانې د سپاهيانو او باغي پښتنو سپاهيانو مړ ځکښې جنګ، د کمناري مرګ، د برطانيه عظمیٰ په کابل د قبضې وانسرائے ته حکم.

د عهدنامۀ ګندمک د څلورم شرط مطابق لارډ ليټن کمناري د حکومت هند د طرف نه په کابل کښې انګريزي سفير مقرر کړو. په اوولسمه جولائي 1879ء کمناري د خپل سکتر مسټر جينکنز او ډاکټر کيلي طبي افسر او د خپلې محافظې دستې چې په هغې کښې د مردان د ګائيډز د پلټنې او رسالې اووۀ اوياتنه وو او د لفټيننټ هيملټن د کمان لاندې وو د کرمې په لار علي خيلو ته راورسيدل. د افغانستان او د انګريزي علاقې په سرحد باندې د امير محمد يعقوب خان د طرف نه هم د فوځ يوه دسته د کمناري د استقبال دپاره رارسيدلې وه. په اتلسم تاريخ کمناري د افغانستان په سرحد کښې داخل شو او د يو څو ورځو د مزل نه پس هغه کابل ته په څليريشتمه جولائي ورسيدو. يعقوب خان د پښتنو د ميلمستيا د دستور مطابق سردار عبدالله خان هراتي او ملا شاه محمد د کابل نه څلور ميله لرې سره د دوؤ هاتيانو او د رسالې د يوې دستې د کمناري او د جينکنز د استقبال دپاره واستول او دغه شان دا دواړه په هاتيانو باندې سوارۀ په ډير عزت او احترام په بالاحصار کښې په يو ډير عالي شان کور کښې ديره شول. بالاحصار ته د راننوتو په وخت کښې د هغوي په اعزاز کښې هغوي ته د اوولسو توپو سلامي وشوه او د لارې دواړو طرف ته دوه توپخانې او نهۀ رسالې او پلټنې قطار کړې شوې. د سفارت د رارسيدو نه لږ ساعت پس امير صاحب خپل مستوفي او داؤد شاه خپل سپه سالار هغوي څخه د هر کلي دپاره وليږل او بيا هم په دغه ورځ ماښام شپږ بجې کمناري سره د خپل ماتحت افسرانو د امير صاحب سلام له لاړو او د وائسرائے هند خط ئې هغۀ ته پيش کړو.

انګريزي سفارت رارسيدو سره د افغانستان په خارجي تعلقاتو کښې خو ښکاره سمدستي مداخلت شروع کړو ولې دا خو د ګندمک د عهدنامې عين مطابق کار وۀ ولې څرنګ چې د مرحوم شير علي خان په زړۀ کښې ويره وه کمناري او د هغۀ ملګرو د افغانستان د اندروني نظام حکومت د حالاتو معلومولو دپاره د افغانستان په خلقو کښې د ځان دپاره ډير مخبران وساتل او د دې حالاتو د معلومولو په غرض هغوي د يعقوب خان خپلو

افسرانو سره هم پټ او ښکاره تلهٔ راتلهٔ شروع کړل. د خپل وقار او اثر زیاتولو او د فیرنګیانو دپاره د افغانستان په سردارانو کښې د ډلې او د پرې جنبې جوړولو دپاره کمناري او د هغهٔ ملګرو چارچاپیره روپی لګول راواخستل او په لړو ورځو کښې ئ خپل رسوخ دومره زیات کړل چې په عامو خلقو او د دربار په سردارانو کښې دا خیال پیدا شو چې د حکومت ټول واک اختیار د کمناري په لاس کښې دے. او چونکې د حکومت د چلولو دپاره ټولې روپی هم هغهٔ امیر صاحب له ورکولې د خلقو دا یقین وهٔ چې هر څهٔ چې د کمناري او د هغهٔ د ملګرو منشا وي هم هغه به کیږي. او د یعقوب خان څان له هیڅ اقتدار د ملک په انتظام کښې نشته. کمناري پخپله هم د خپلې رویې او طرز عمل نه دا ثابته کړه چې انګریزي سفارت نهٔ صرف د افغانستان د خارجي تعلقاتو د نګرانی دپاره راغلے دے بلکې چونکې انګریزان امیر صاحب له یو معقول رقم په طور د امداد ورکوي د دې دپاره هغوي ته د دې ملک په اندروني معاملاتو کښې هم د دخل ورکولو اختیار شته. اګرچې په ظاهره انګریزي سفارت د څان دپاره د افغانستان په کورني معاملو کښې د دخل ورکولو اختیارات په دعوې سره نهٔ وو غوښتي ولې لکه څرنګ چې د فیرنګیانو دستور دے چې په کوم ځاے کښې هغوي د ګوتې ځاے بیامومي هلته لاس ځایوي. هم دا شان دکمناري منشا هم وه چې زهٔ په روپو د خپل قام دپاره په افغانستان کښې جدا پرې جوړولو په ذریعه ورو ورو دا شان او دومره اقتدار او طاقت پیدا کړم چې بیا د افغانستان په امیر کښې دا حوصله پیدا نهٔ شي چې هغه د انګریزي حکومت د منشا خلاف څهٔ کار وکړې شي. دې کښې شک نشته چې د کمناري په دې طرز عمل باندې امیر یعقوب خان او د هغهٔ د دربار افسران ټول پوهه وو. تر دې پورې چې په ټول ښار کښې او په فوځ کښې به هم دا خبرې کیدے هغوي ته دا هم معلومه وه چې کهٔ چرې انګریزي سفارت ته ښکاره په ښکاره د هغوي د دې رویې برخلاف حجت پیش کړې شي نو په ځاے د دې چې هغوي د خپلې رویې نه باز راشي هغوي به امیر صاحب ته نور نور مشکلات پیښ کړي. او د فیرنګیانو او د پښتنو تعلقات به بیا کشیده شي. شیر علي خان مرحوم ته دا هم معلومه وه چې د سفارت په آړ کښې به فیرنګیان نهٔ صرف زما په خارجي تعلقاتو کښې دخل ورکوي بلکې د افغانستان د مکمل لاندې کولو په نیت به هغوي په افغانستان کښې دننه عام خلقو سره ورو ورو دا شان تعلقات پیدا کړي چې د افغانستان د امیر به څان له هیڅ حیثیت او طاقت پاتې نهٔ شي.

اګر چې امیر صاحب او د هغهٔ مشیران په دې معامله کښې بالکل بیوسه ښکاریدل ولې د فیرنګیانو په دې طرز عمل د امیر صاحب په بیوسی باندې په قوم پرسته طبقه کښې د خفګان او د ناراضګی خیالات ورځ تر ورځ زیاتیدل. د کومې خبرې نه چې هغوي سره د شیر علي خان مرحوم او د هغهٔ د دربار د مشیرانو ویریدل هغه د هغوي د سترګو په وړاندې کیدل

شروع شو. او هغوي دا وليدل چې کۀ چرې معاملات هم دا شان روان وو نو د حکومت افغانستان واګې به په لږو ورځو کښې د پښتنو د لاس نه وځي او د فيرنګيانو په لاس کښې به ورشي. د قوم پرستو دې ډلې دا خيالات ورو ورو په ښار دننه په عام خلقو کښې او په فوځ دننه هم خوارۀ کړل او د انګريزي سفارت او د امير صاحب برخلاف ئې د هغوي جذبات په ښۀ شان سره مشتعل کړل. د هغوي پروپيګنډه خاص طور سره په فوځ کښې زياته کامیابه شوه چې د فوځ تنخواګانې د ډيرې مودې نه باقي وې او هر کله چې به هغوي د خپلو تنخواګانو مطالبه وکړه نو هغوي ته به دا ووئيلے شول چې اوس انګريزي سفير رارسيدلے دے نو هغه به ستاسو تنخواګانې ورکوي ځکه چې د جنګ په وجه په خزانه کښې يوه روپۍ هم نشته او انګريزي سفير ځان سره د فوځ د خرڅ دپاره ډيرې روپۍ راوړې دي. د دې نه علاوه هغوي ته دا طمع هم ورکړې شوې وه چې د انګريزي سفارت رارسيدو سره به اوس د جبري فوځي خدمت دستور هم منسوخ شي. نو چې په دې دوارو خبرو کښې يوه هم پوره نۀ شوه نو هغوي عام خلقو سره په ډير جوش د فيرنګيانو او د امير صاحب برخلاف د خپل نفرت په ښکاره کولو کښې شامل شول د کمناري د خپلې ډائرۍ نه معلوميږي چې هغۀ ته به د دې ټولو واقعاتو اطلاع خپلو مخبرانو وقتاً فوقتاً ورکوله ولې هغه د خپل طاقت او زور په نشه کښې پخپله ځان له دوکه ورکوله او د پښتنو د قوم پرستۍ دا ټولې خبرې ورته هسې لوبې توقې ښکاره کيدے هر کله چې د عامو خلقو او د فوځ د جذباتو دا حال وۀ نو په دې منځکښې په دريم اګست نورې شپږ پلټنې د هرات نه کابل ته راورسيدلې او د رارسيدو سره ئې د خپلو بقايا تنخواګانو مطالبه وکړه مګر د تنخواګانو دپاره په خزانه کښې روپۍ چرته وې چنانچه ډيرې ورځې نۀ وې تيرې شوې چې په هغوي کښې هم هغه خيالات خوارۀ شول چې کوم په نورو سپاهيانو کښې خوارۀ وو. په شپږم اګست کمناري د دې ټول صورت حالات اطلاع د تار په ذريعه وائسرائے ته دا رنګ ورکړه:

"Alarming reports reached me personally today, from several sources, of the mutinous behaviour of the Hirat regiments lately arrived here, some of the men having been seen going about the city with drawn swords and using inflammable language against the Amir and his English visitors, and I was strongly advised not to go out for a day or two. I sent for the Foreign Minister, and as he was confident that the reports were exaggerated, we went out as usual."

ترجمه: "نن ماته ذاتي طور د مختلفو ذريعو نه د هرات د پلټنو چې اوس اوس دلته رارسيدلي دي د باغيانه رويې متعلق خوفناک خبرونه راغلل چې د هغې نه معلوميږي چې په هغوي کښې ځنې کسان تورې ايستلې په ښار کښې په ګشت لګولو ليدلي شوي دي او د امير او د هغۀ د انګريزي ميلمنو برخلاف ئې د غصې الفاظ استعمال کړي دي او ماته دا صلاح راکړې شوه چې يوه ورځ دوه دې زۀ بهر ته نۀ وځم ما وزير خارجه راوبللو او چونکې د هغۀ دا يقين وۀ چې

دا خبرونه مبالغه آميز دي نو مونږ د معمول مطابق بهر ته ووتو.''

بيا مخکښې کمناري ليکي چې:

"I do not doubt that there is disaffection among the troops on account of the arrears of pay, and especially about compulsory service, but the Amir and his ministers are confident that they can manage them."

ترجمه: ''په دې کښې شک نشته چې په فوځ کښې د تنخواه د بقايې په وجه بې چيني ده او خاص طور سره په جبري ملازمت باندې ليکن د امير او د هغهٔ د وزيرانو دا يقين دے چې مونږ د دې انتظام کولے شو.''

سردار بهادر رسالدار نقشبند خان نومے د فيرنگيانو په هندوستاني فوځ کښې يو افسر وهٔ د هغهٔ د شهادت نه هم د دې ټولو خبرو تصديق کيږي. دا رسالدار په انګريزي سفارت باندې د حملې کولو په ورځو کښې او د هغې نه وړومبے هم په کابل کښې موجود وهٔ د هغهٔ د چشم ديد شهادت بعضې فقرې چې کومې هغهٔ د کمناري او د هغهٔ د ملګرو د قتل نه پس انګريزي جنرل رابرټس ته د دې واقعې متعلق ورکړې وے دا دي:

'' د هغوي (يعنې د هرات د پلټنو) د رارسيدو په شلورمه ورځ سحر هغوي په قطار کښې د کابل په لويو لويو کوڅو کښې سره د خپلو افسرانو او د باجې ګشت ولګولو. او لويې لويې نعرې ئې ووېستې او کمناري ته ئې په نوم کنځل وئيل وکړل. او وې وئيل چې دې دلته څهٔ له راغلے دے هغوي بيا ټولو قزلباشو ته هم کنځل وکړل او ورته ئې ووئيل چې تاسو هيڅ سړي نهٔ ئې او اوس به مونږ ورته وښيو چې څهٔ کول پکار دي اميد دے چې ډير زر به مونږ د کمناري خلاصے وکړو. د دې نه پس هغوي د ښار نه بهر دوه ميله لرې شيرپور خپل کيمپ ته لاړل.

دا رسالدار بيا په خپل شهادت کښې وائي چې ما د دې سپاهيانو نه د دې ټولې مظاهرې غرضّ تپوس وکړو نو هغوي ماته په جواب کښې ووې چې تهٔ دا اعتبار کولے شے چې سپاهيان به بغير د خپلو افسرانو د حکم نه دا شان کار وکړي مونږ ته خپلو افسرانو وئيلي وو چې تاسو دا شان وګرځئ او چغې ووهئ.

هر کله چې نقشبند خان د هرات د پلټنو دا مظاهره پخپلو سترګو وليده نو هغهٔ سمدستي کمناري د دې نه خبر کړو ولې کمناري هغهٔ ته په جواب کښې ووې چې هيڅ فکر مهٔ کوه خپل زړهٔ مضبوط کړه کوم سپي چې غاپي هغه چيچل نهٔ کوي. دې رسالدار په جواب کښې هغهٔ ته ووئيل چې دا سپي ضرور چيچل کوي او په واقعه کښې خطره شته دے کمناري بيا هغهٔ ته ووئيل چې دوئ به يواځې مونږ درې څلور تنه دلته ووژني ولې زمونږ د مرګ بدل به ضرور د هغوي نه واخستې شي.

د دې نه پس نقشبند خان جينکنز ته هم لاړو ولې هغهٔ هم ورته ووئيل چې څه ډر نه

کمناري وئيلي دي هغه بالکل صحيح دي حکومت برطانيه ته به زمونږ د درې څلورو تنو د
قتل نه هيڅ نقصان ونهٔ رسيږي.

د هرات د پلټنو د دې رويې نه امير محمد يعقوب خان هم بې خبره نهٔ وهٔ هغهٔ ته دا هم
معلومه وه چې کهٔ انګريزي سفارت ته څهٔ نقصان هم ورسيدو نو د هغې ذمه وار به هم زهٔ ګڼلے
شم. چنانچه هغهٔ د خپل فوځ سپه سالار داؤد شاه د هغوي د پخلا کولو دپاره هغوي ته ولیږلو
ولې هغوي داؤد شاه سره هم په ډيرې ګستاخۍ خبرې وکړې. داؤد شاه هغوي ته دا هم ووې
چې خپلو خپلو کورونو ته په رضا لاړ شئ ولې هغوي ورته په جواب کښې ووئيل چې تر څو
پورې زمونږ د تنخواګانو بقايې مونږ ته نهٔ وي راکړې شوې تر هغې پورې مونږ په رضا باندې
نهٔ ځو.

کومې اطلاع ګانې چې کمناري خپل حکومت ته د دې راتلونکي انقلاب په باره
کښې ورکړې وے په هغې کښې يوه کښې هم نهٔ خو په امير محمد يعقوب خان باندې څهٔ
الزام لګولے وهٔ او نهٔ ئ د هغهٔ د دربار په يو ذمه وار عهده دار دا تور پورې کړے وهٔ چې ګنې
هغوي د هرات دې پلټنو سره په سازش کښې مصلحتيان وو. چنانچه په ديرشم اګست کوم
خط چې کمناري لارډ ليټن ته د کابل نه ليکلے وهٔ په هغې کښې هغهٔ صفا ليکلي وو :

" I have nothing whatever to complaint of on the part of the Amir or his ministers, though there are matters, I wish I could influence him about ........ "

ترجمه : ”نهٔ خو په امير کښې او نهٔ د هغهٔ په وزيرانو کښې څهٔ داسې خبره شته چې زهٔ د هغې
متعلق شکايت وکړم اګر چې دا شان ډيرې معاملې شته چې د هغې په باره کښې زما زړهٔ
غواړي چې په امير باندې ما اثر واچولې.“

په دريم ستمبر 1879ء د هرات د فوځ په متواتر درخواستونو باندې د هغوي نه درې
پلټنې په بالاحصار کښې د انګريزي سفارت خانې نه قريباً يو سل ګزه لرې په يو باغ کښې
قطار کړې شوې د دې غرض دپاره چې هغوي له د يوې مياشتې تنخواه ورکړې شي د دې
سپاهيانو د څلورو مياشتو تنخواه باقي وه او په دغه ورځ د دوئ طمع وه چې مونږ له به د
څلورو واړو مياشتو تنخواه راکيدے شي ولې هر کله چې هغوي ته معلومه شوه چې صرف د
يوې مياشتې تنخواه به راکيدے شي نو هغوي ډير په غصه شول او په ډيرې سختۍ سره ئ د
څلورو واړو مياشتو تنخواه وغوښته سپه سالار داؤد شاه او جنرل کريم خان ته د يوې مياشتې
نه د زياتې تنخواه ورکولو اختيار.نهٔ وهٔ له دې کبله هغوي د نورې تنخواه ورکولو نه انکار
وکړو. په دې د سپاهيانو او داؤد شاه او کريم خان په منځکښې مشت و ګريباني وشوه او
داؤد شاه د دې سپاهيانو د لاسه ښهٔ ووهلے شو تر دې پورې چې هغه بيخوده د اس نه کوز
پريوتو.

د دې نه پس چونکې د کمناري دا دستور وهٔ چې هغه به د ملک د اندروني معاملاتو

متعلق د خلقو په شکایتونو باندې غوږ اېښودلو او په هغې کښې به ئ دخل ورکولو په دې وجه دا سپاهیان سمدستي د هغې باغ نه د انګریزي سفارت خانې په طرف په دؤ دؤ د فریاد او د داد خواهۍ دپاره راغلل په دغه وخت کښې د دې سپاهیانو انګریزي سفارت خانې ته راتلل د څهٔ په وجه بالکل نهٔ وو بلکې اتفاقي او په ښهٔ نیت وو. د هغوي مدعا نهٔ خو د فساد کولو وه او نهٔ انګریزي افسرانو ته د نقصان رسولو وه هغوي سره په دې وخت کښې د حملې دپاره څهٔ وسله هم نهٔ وه هغوي سره دا وخت صرف تورې او چړې په کمربندونو کښې پرتې وې ځکه چې هغوي د تنخواه دپاره په نیمه وردۍ کښې راغلي وو. د هغوي مدعا صرف دومره وه چې هغوي د کمناري مخکښې د خپلې ناراضګۍ او بې اطمینانۍ اظهار وکړي د دې دپاره چې هغه په امیر محمد یعقوب خان باندې زور واچوي او هغوي له پوره تنخواه ورکړي. دیخوا هرکله چې کمناري ولیدل چې د فوځ دومره ډېر سپاهیان انګریزي سفارت خانې ته په ډېر جوش او غصه راروان دي نو هغهٔ حکم وکړو چې د سفارت خانې دروازې بندې کړئ او یو سپاهي ته دې هم د راننوتو اجازت نشي ورکیدے. په دې د هرات د سپاهیانو او د سفارت خانې د ملازمانو په منځکښې مشت و ګریباني وشوه او ګټې هم وویشتې شوې. هرکله چې کمناري د دې نه خبر شو نو ډېر په غصه کښې بهر ته راووتو او چونکې هغه ډېر تند مزاج او متکبر وهٔ او په هندوستان کښې د اکثرو فیرنګیانو پشان به ئ د ایشیا ټولو خلقو او بیا خاص طور پښتنو ته سپک کتل هغهٔ د راوتو سره د دې سپاهیانو په دې ټولي د تماچې یو ګوزار وکړو او یو پښتون ئ بې ګناه قتل کړو کهٔ چرې کمناري دا شان په بې حوصله توب او غرور پخپل لاس د داسې ټولي نه چې د هغوي جذبات د وړومبي نه مشتعل شوي وو یو سړے دا شان په بې رحمۍ قتل کړے نهٔ وے نو کوم واقعات چې هغهٔ او د هغهٔ ملګرو ته وړپیښ شول دا به بالکل نهٔ وو پیښ شوے. مګر کمناري خپل ځان او خپل ټول ملګري صرف په خپله تند طبیعتۍ او تند مزاجۍ باندې قربان کړل د هغهٔ دا یقین وهٔ چې زهٔ به په دې طریقه د لوے هجوم انګریزي سفارت خانې طرف ته راتلل بند کړم او په هغوي باندې به خپل یو رعب واچوم. کهٔ چرې دا اندازه هغهٔ د هندوستان د تجربې په بنا د پښتنو بابت لګولې وه نو هغه په ډېرې سختې غلطۍ کښې پروت وهٔ هغهٔ نه دا هیر شوي وو چې زهٔ په هندوستان کښې نه بلکې په هغه افغانستان کښې یم چې لا ازاد دے او غلام شوے نهٔ دے. د پښتنو قوم پرستي طبقې خیالات د وړومبے نه په افغانستان کښې د فیرنګیانو د روز افزون اقتدار په سبب د هغوي برخلاف شوي وو ولې څهٔ وخت چې هغوي صرف د څلورو فیرنګیانو د لاسه پخپل ملک کښې د خپل قام په یو سړي باندې دا شان دست درازي ولیده نو د هغوي د غصې څهٔ حد پاتې نشو هغوي سمدستي د شیرپور په طرف د خپلې وسلې د راوړو دپاره وزغلیدل او په لږ ساعت کښې په ډېر شمار کښې سره د ټوپکو، توپو او تماچو راورسیدل. او په سفارت خانه

باندې ئ باقاعده حمله شروع کړه د کمناري بالکل دا طمع نۀ وه چې د پښتنو په سپاهيانو کښې به دومره جرأت وي چې هغوي به په انګريزي سفارت خانه حمله وکړي ولې څۀ وخت چې هغۀ د پښتنو دا غير معمولي جوش وليدلو نو وارئ ډير خطا شو او سمدستي ئ امير صاحب ته د امداد دپاره د صوبيدار کريم خان نومې يو هندوستاني افسر په خلۀ چې په دې ورځو کښې په کابل کښې په رخصت وۀ زباني سوال جواب واستولو. مګر معلوميږي چې کريم خان د کمناري دا پيغام امير صاحب ته د دې حمله کونکو سپاهيانو د ويرې ونۀ رسولو. په دې منځکښې د سفارت خانې د سپاهيانو او د حمله کونکو سپاهيانو په منځکښې باقاعده ډزې شروع شوې. کمناري هم هغه شان په خپل لاس ډزې کولې او معلوميږي چې په انګريزي افسرانو کښې د ټولو نه وړومبې هم هغه د هرات د سپاهيانو دلاسه په سر باندې په ګولۍ ولګيدو او سمدستي مړ شو. د دې نه پس جينکنز د کاغذ يوه پرزه د نبي نومې يو سړي په لاس امير صاحب ته بيا د امداد دپاره وليږله دا پرزه امير صاحب ته ورسيده او دا شان معلوميږي چې امير صاحب وړومبې ځل د جينکنز هم د دې رقعې نه د دې واقعې نه خبر شو امير صاحب سمدستي خپل زوې او خپل سپه سالار داؤد شاه او نور مليان، سيدان او سردار يحيىٰ خان خپل سخر سره د قرآن شريف باغي سپاهيانو ته راواستولو ولې اوبۀ اوس د ورخه تيرې شوې وې د فريقينو نه سړي په ګولو لګيدلي وو. د باغيانو د جوش او د غصې څۀ حد نۀ وۀ او د ښار نه هم بيشماره ډير خلق دې سپاهيانو سره شامل شوي وو هر کله چې داؤد شاه هغوي ته د منت او خبرو اترو دپاره راغلو نو هغوي د اس نه کوز راوغورځولو او دومره ئ ووهلو چې هغه بيخوده په زمکه وغورځيدو باغيانو اوس په ډير شور سره د دريو طرفو نه په سفارت خانه چپاؤ وکړو او څلورم طرف ته ئ د رسالې يوه مضبوطه دسته د دې دپاره ودروله چې د سفارت خانې نه څوک په تيښته خلاص نۀ شي. جينکنز يو ځل بيا د يو هندو په لاس امير صاحب ته يو خط د امداد دپاره وليږلو ولې دا هندو د سفارت خانې نه راوتو سره باغيانو په ټورو کړو او د جينکنز پيغام امير صاحب ته ونۀ رسيدو ولې کۀ چرې دا قاصد امير صاحب ته رسيدلے هم وې نو د واقعاتو نه دا شان معلوميږي چې په دې ساعت کښې امير صاحب او د هغۀ د فوځ ټول افسران بيوسه وو. د فوځ د سپاهيانو همدردي قدرتاً خپل د هرات ملګرو سره او د قام خلقو سره وه. او هيڅوک هم د خپلو افسرانو حکم منلو ته تيار نۀ وو. هر کله چې فيرنګيانو وليدل چې باغيان د سفارت خانې نه راچاپيره شول او د خلاصي هيڅ رؤ پاتې نشو نو لفټيننټ هيملټن د ګائيډز د سپاهيانو افسر جنرل کريم خان د پښتنو د فوځ افسر ته د دې تيمور نومې يو سپاهي په لاس پيغام راوليږلو چې کۀ چرې باغيان د سفارت خانې د خواوشا نه لاړ شي نو مونږ به سپاهيانو له د شپږو مياشتو تنخواه ورکړو مګر څۀ وخت چې تيمور کريم خان ته دا سوال جواب ورکولو نو باغيانو سپاهيانو هغه راګير کړو او ښه ئ

وتښکولو. بیا کریم خان هغهٔ ته ووئیل چې زما په یو سپاهي باندې هم لاس نهٔ رسي او زهٔ بالکل بیوسه یم. دیخوا اوس باغیانو په دوؤ توپو په سفارت خانې ګوله باري شروع کړه. انګریزي افسرانو هم سره د خپلو سپاهیانو درې ځله په ډیرې بهادرۍ په باغیانو باندې راووتل ولې درې واړه ځله واپس شول. او اخر دا چې د یوې ښې زبردستې مقابلې نه پس د انګریزي سفارت خانې ټول افسران سره د خپلې محافظې دستې د اکثرو سپاهیانو قتل شول.

په انګریزي سفارت خانې باندې د باغیانو حمله لا هم هغه شان جاري وه چې جلال الدین نومې یو سړې چې د انګریزي سفارت د میر منشي یو ملازم وهٔ په اس باندې سور په زغاښت علي خیلو ته لاړو او د دې ټولې واقعې خبر ئ د ټولو نه وړومبې مسټر جوزف ته چې د محکمهٔ تار سپرنټنډنټ وهٔ ورکړو. دا سړې د ګورکه سپاهیانو د یو محافظ ټولې سره کابل ته د تار بوتلو په کار لګیدلې وهٔ چنانچه هغهٔ جلال الدین فوراً کپتان کنولي پولیټیکل افسر علي خیلو ته واستولو او کپتان کنولي دا خبر سمدستي شملې ته ورکړو. د شملې نه کپتان کنولي ته په تار کښې ووئیلي شو چې تهٔ سمدستي امیر یعقوب خان ته د خط په ذریعه خبر ورکړه چې حکومت انګریزي به د انګریزي سفارت د مکمل حفاظت دپاره تا ذاتي طور ذمه وار ګڼي او کهٔ چرې تهٔ سمدستي مونږ ته د هغوي د حفاظت اطمینان را نهٔ کړې نو انګریزي فوځونه به فوراً په کابل باندې پیشقدمي وکړي.

جلال الدین چې څهٔ وخت علي خیلو ته د کابل نه روانیدو نو د سفارت خانې په سپاهیانو او باغیانو کښې لا هم هغه شان جنګ جاري وهٔ او د فیرنګیانو د ټولې د قسمت لا څهٔ فیصله نهٔ وه شوې. جلال الدین په څلورم تاریخ ماښام علي خیلو ته رسیدلې وهٔ ولې په دې منځکښې د جنګ فیصله شوې وه او کپتان کنولي د انګریزي سفارت د حال نه په بې خبرۍ کښې د حکومت هند هدایات امیر یعقوب خان ته ورسول. په پنځم تاریخ د ستمبر ماښام د امیر یعقوب خان د طرف نه یو خط د ډیر افسوس په الفاظو کښې لیکلې شوې د دې واقعې متعلق د جنرل رابرټس په نوم باندې علي خیلو ته راورسیدو. دا خط امیر صاحب په دریم ستمبر ماښام لیکلې وهٔ. د خط مضمون دا دې :

" پس د سلامونو نه، کوم فوځونه چې په بالاحصار کښې د تنخواه دپاره راجمع شوي وو ناساپي رامات شول او خپل افسران ئ په ګټو وویشتل د دې نه پس هغوي بیا سفارت خانې ته راذؤ کړو او په ګټو ئ وویشته د دې په جواب کښې په هغوي ګولۍ ووریدې بیا اړې ګړې او دنګا فساد دومره حد ته ورسیدو چې د هغې چپ کول ناممکن شو. د شیر پور او د بالاحصار نه چارچاپیره خلق او د ښار نه د هر قام خلق بالاحصار ته رانوتل. او میخزینونه، توپخانې او کارخانې ئ تباه کړې او دې ټولو فوځونو او خلقو په سفارت خانه باندې حمله وکړه په دې منځکښې ما د سفیر د امداد دپاره داؤد شاه (کماندر انچیف)

واستولو. هرکله چې هغه سفارت خانې ته ورسيدو نو هغه ئ په برچو او گټانو د اس نه كوز راوغورځولو او اوس هغه مړ کوڼے دے. بيا ما سردار يحيیٰ خان او خپل زوے وليعهد سره د قرآن فوځونو له واستول ليکن هيڅ فائده ئ ونهٔ کړه بيا ما د هر يو قام لوے لوے سيدان او مليان وليږل ليکن په دې هم هيڅ ښيګړه ونشوه تر اوسه پورې يعنې تر ماښامه جګړه جاري دهٔ کتے به شي چې د دې به څهٔ انجام وي. زهٔ په دې اړې ګړې ډير غمژن يم. دا ټوله خبره د قياس نه بهر ده.

نقل د دويم خط چې امير يعقوب خان په څلورم ستمبر 1879ء د دې واقعې لارډ رابرټس ته ليکلے وهٔ هغه داسې وهٔ :

" پرون سحر اتو بجو نه تر ماښامه پورې زرګونه خلق د سفارت خانې د تباه کولو دپاره راجمع شول دواړه طرفو ته د ځانونو نقصان ډير وشو. ماښام هغوي سفارت خانې ته اور ورته کړو پرون ټوله ورځ او ترديې وخته پورې زهٔ سره د پنځو نوکرانو محصور يم. ماته د سفير متعلق هيڅ څهٔ يقيني خبر نشته چې آيا هغه او د هغهٔ سرې په خپلو ځايونو کښې مړهٔ شوي او کهٔ نيولي شوي او کهٔ بهر ته راويستې شوي دي. افغانستان تباه شو او فوځونو او د ښار خلقو او د چارچاپيره خلقو د فرمان برداری جغ غورځولے دے اميد نهٔ دے چې داؤد شاه بچ شي د هغهٔ ټول ملګري قتل شو کارخانې اوميخزينونه ټول وسوزيدل حقيقت خو دا دے چې زما ټول سلطنت تباه شو. د خدا ے پاک نه پس زهٔ د حکومت (برټش) د امداد او د صلاح منتظر يم زما رښتيني دوستي او ايمانداري به د رڼا ورځې پشان ثابته شي. په دې مصيبت کښې زما دوست سفير هم زما نه لاړو او سلطنت مې هم د ګوتو ووتو. زهٔ سخت غمګين او مشوش يم."

هرکله چې د دې ټولې واقعې خبر په دې الفاظو کښې :

" The web of policy so carefully and patiently woven has been rudely shattered. We have now to weave a fresh and, I fear, a wider one from undoubtedly weaker material."

ترجمه : "د پاليسي کومه تنسته چې مونږ ډير په فکر او په تحمل اودلې وه هغه په بې دردی وشلولې شوه اوس به مونږ يوه بله تنسته ډدو چې د وړومبے نه لويه وي مګر ماسره فکر دے چې د هغې تارونه به ضرور کمزوري (اومهٔ) وي."

انګلستان ته ورسيدو نو وزير هند د تار په ذريعه وائسرا ے ته دا لاندې حکم وليږلو :

"په کابل باندې قبضه کول ضروري دي او په هغې باندې پيشقدمي سمدستي پکار ده." او بيا په اتلسم ستمبر د سرکاري مراسلې په ذريعه وائسرا ے ته وليکل چې "د ملکهٔ معظمه حکومت يور ايکسي لينسي با اجلاس کونسل ته د دې خبرې اطمينان ورکول څهٔ ډير ضروري نهٔ ګڼي چې هغوي به په ټولو تجاويزو کښې چې کوم تاسو ته د برطانيه عظمیٰ د

عزت د برقرار ساتلو او په انګریزي سفارت باندې د قاتلانه حملې د بدل اخستو دپاره مناسب ښکاري ستاسو پوره مرسته کوي."

د دې خبر انګریزي الفاظ هم مونږ لاندې درج کوؤ :

" Her Majesty's Govt, need scarcely assure your Excellency in council of their steady support in all measures which may be necessary to vindicate the honour of Great Britain, and to exact redress for the murderous violence to which the members of the mission have fallen victims."

د وزیر هند د تار رارسیدو سره د شملې نه حکم وشو چې اووۀ نیم زره فوځ دې د جنرل رابرټس د کمان د لاندې د شترګردن په لاره سمدستي په کابل باندې پیشقدمي شروع کړي چنانچه جنرل رابرټس چې دا وخت په شمله کښې وۀ په شپږم ستمبر د جنګ محاذ ته روان شو. د دې نه علاوه شپږ زره فوځ ته حکم وشو چې د خیبر په لاره دې جګدلک ته روان شي او د هغه ځایه نه دې کابل سره د خبر رسانۍ لار پرانستې وساتي. جنرل ستېورټ ته چې په دې ورځو کښې د قندهار نه د هندوستان په طرف راروان شوے وۀ. حکم وشو چې فوراً بیا په قندهار باندې قبضه وکړه چنانچه هغۀ بیا په شپږم ستمبر په قندهار قبضه وکړه.

## یویشتم باب

د جرنیل رابرټس د کمان لاندې په افغانستان د قبضې دپاره د فیرنګیانو کارروائي، په علي خیلو کښې په شپاړسم ستمبر 1879ء د رابرټس په افغانستان د حملې کولو اعلان، د یعقوب خان د موجوده حالاتو په بنا رابرټس ته د حملې رائ نۀ ورکول، د رابرټس د امیر یعقوب خان د مشورې نه انکار، د یعقوب خان د خاص سړو رابرټس سره په علي خیلو کښې لیدل او رابرټس ته د حملې نۀ کولو رائ.

په وروستنې باب کښې مونږ د دې خبرې ذکر کړے دے چې د کمنارې او د هغۀ د ملګرو د قتل د بدل اخستو دپاره حکم وشو چې انګریزي فوځونه دې سمدستي بیا په کابل باندې پیشقدمي شروع کړي چونکې د سر سمویل براؤن فوځونه د پېښور نه خوارۀ شوي وو او سر ډانلډ ستېورټ په قندهار کښې وۀ چې د کابل نه ډېر لرې وۀ له دې کبله په کابل باندې د حملې او قبضې کولو ټول بندوبست د جنرل رابرټس فوځونو ته وسپارلے شو ولې چونکې په زمی کښې د کرمې لار د واؤرو په سبب بنده شي په دې وجه د خیبر فوځونو ته حکم وشو چې هغوي دې صرف دومره وکړي چې د پېښور او د کابل ترمنځ دې د تلو راتلو لاره د راتلونکې ژمي دپاره پرانستې وساتي.

جنرل رابرټس سره دوه بریګیډه کمان بریګیډیر جنرل ایچ میکفرسن سي بي وي ته ورکړې شو او د بل بریګیډ کمان بریګیډیر جنرل ټي ډي بیکر ته ورکړې شو او د رسالې د بریګیډ کمان بریګیډیر جنرل ډبلیو ډي میسي ته ورکړې شو او د توپخانې کمان لفټیننټ کرنل بي ایل ګارډن ته او د انجنیئرانو کمان لفټیننټ کرنل اے اي پرکنز ته حواله شو. کرنل میکګریګر چې بیا سر چارلس میکګریګر کے سي بي شو چیف آف دي سټاف او کپتان کومب چې بیا میجر جنرل کومب شو او لفټیننټ مینرز سمتھ ډپټي اسسټنټ کوارټر ماسټر جنرلان مقرر شول. ایچ ایم ډیورنډ چې بیا وروستو سر هنري مارټیمر ډیورنډ شو د جنرل رابرټس پولیټیکل سکتر او میجر هیسټنګز د هغهٔ پولیټیکل افسر مقرر شو. د آمدورفت د لارې د حفاظت دپاره بریګیډیر جنرل هیوج ګف او میجر مارک هیتھکوټ د هغهٔ اسټنټ مقرر شول.

د شملې نه کرمې ته د روانیدو نه وړومبے رابرټس لارډ لیټن سره په دې غرض ملاقات وکړو چې د هغهٔ نه افغانانو سره د انګریزانو د آئنده سیاسي تعلقاتو متعلق مفصل هدایات واخلي. لارډ لیټن هغهٔ ته په جواب کښې ووئیل:

"You can tell them we shall never again altogether withdraw from Afghanistan, and that those who help you will be befriended and protected by the British Govt;"

ترجمه: " چې تهٔ افغانانو ته دا وئیلے شے چې مونږ به بیا هیڅرې دَ افغانستان نه پوره طور را ونهٔ وځو او هر څوک چې مونږ سره دا وخت ودریدو نو مونږ به هغهٔ سره خپله اشنائي پالو او انګریزي حکومت به د هغوي حفاظت کوي."

لوستونکو ته به د آئنده واقعاتو نه ثابته شي چې د لارډ لیټن دا لافه څرنګه غلطه او بې بنیاده وه. هر کله چې د پښتنو د قوم طاقت او زور د دوؤ کالو د مسلسل جدوجهد نه پس تر دې حده زیات شو چې د انګریزي فوځونو دپاره په افغانستان کښې پاتې کیدل ګران شو نو هغوي د افغانستان نه پوره طور په راوتو باندې هم مجبور شول او خپلو ډیرو خیرخواهانو لکه والئ قندهار شیر علي خان سره ئې دوستي هم ونهٔ پاللې شوه.

رابرټس کرمې ته رارسیدو سره خپل فوځ له د تنظیم ورکولو او د هغهٔ د تیارولو په کار کښې همه تن مصروف شو او سره د دې چې په افغانستان کښې دا وخت دا شان یو منظم طاقت هم نهٔ وهٔ چې کابل ته د هغهٔ د پیش قدمۍ په لاره کښې حائل شوے وے ولې بیا هم هغهٔ د یو محتاط او تجربه کار جرنیل په شان د دې ټول مهم په کامیابۍ سره سر ته د رسولو دپاره ډیر فکرمند وهٔ. هغهٔ ته وړومبے هم افغانانو سره د جنګ کولو تجربه شوې وه هغه په دې پوهه وهٔ چې په افغانستان کښې کهٔ منظم فوځ وي او کهٔ نه یو مرکزي حکومت موجود وي او کهٔ نهٔ وي ولې کهٔ چرې د اولس عام خلقو ته د تیاریدلو موقع یو ځل په لاس ورغله نو هغوي به زما

پـه مـقـابله کښې د باقاعده فوځ په نسبت هم زياتي سخته مقابله وکړي. د تير شوي جنګ په سبب نهٔ خو د افغانستان په خزانه کښې روپۍ وې او نهٔ فوځ سره سامان جنګ وهٔ. سرکاري فوځونه په سخت ابتر حالت کښې وو او د باقاعده مقابلې طاقت ئ قطعاً په ځان کښې نهٔ لرلو ولې د پښتنو د عام خلقو نه او بالخصوص د غرونو جنګجو او توريالو قبائلو نه هغه ډير ويريدلو. لـه دې کبله هغهٔ دا اراده وکړه چې وړومبے د دې نه چې پښتانهٔ راويښ شي او زما مقابلې ته راوځي نو چې زهٔ په کابل باندې د لږ نه لږ ساعت کښې ورو خيژم او د هغې په صدرمقام باندې قابو بياموم ولې د هغهٔ په مخکښې د باربرداری د څاروو کمے يو دا شان مشکل وهٔ چې د هغهٔ فوځ ئ سمدستي وړاندې کيدو ته نهٔ پريښودو. بل تکليف هغهٔ ته د آمدورفت د لارې وړدوالے او د هغې د محفوظ ساتلو دپاره مکمل انتظام کول وو. وړومبے سر سمويل براؤن ته په خيبر کښې او رابرټس ته په خوست کښې په دې باره کښې بيحده ډير تکليف رسيدلے وهٔ. تر دې حده چې د هغوي د سامان جنګ او د سامان رسد په قافلو باندې د پښتنو قبائلو متواتر حملو د هغوي مزيد پيش قدمي د کابل په طرف ناممکنه کړې وه. د ټل نه تر شترګردنه پورې يو سل او پنځلس ميله لار ده. علاوه د دې نه چې د دې ټولې لارې د حفاظت دپاره د يو ښهٔ مضبوط فوځ ضرورت وهٔ. د شتر ګردن د درې د حفاظت دپاره هم پوره او کافي انتظام کول ضروري وو. د فوځي نقطهٔ نګاه نه د رابرټس دا اوهٔ نيم زره سړي د دې کار دپاره ناکافي وو مګر د هغهٔ د سترګو د وړاندې چې کوم لوے او فوري مقصد پروت وهٔ هغه دا وهٔ چې پښتنو قبائلو ته د راټوليدو او د منظم کيدو موقع په لاس ور نهٔ شي. او د باربرداری هر څومره څاروي چې في الحال په لاس راتلې شي هغه راجمع کړم او د افغانستان خلق خبريږي نو چې ما په کابل باندې فوځي قبضه کړې وي.

د ټولو نه وړومبے رابرټس د چارچاپيره هغه علاقې خانان او ملکان او نور د اثر او رسوخ خاوندان سړي په علي خيلو کښې راجمع کړل چې په کومه کښې انګريزي فوځونه د څهٔ مودې نه موجود وو او د هغوي نه ئ امداد طلب کړو. اګر چې دې خلقو د انګريزانو د طاقت او د زور په سبب رابرټس سره حسب معمول د خپلې وفاداری او امداد ډير لوظونه او وعدې وکړې ولې رابرټس ته د هغوي په خبرو او تسلو بالکل يقين ونهٔ شو. او په خپل انتظام او احتياط کښې ئ يوه ذره هومره فرق را نهٔ وستو.

پـه علي خيلو کښې کپتان کنولي هغهٔ له د امير يعقوب خان د دريم او څلورم ستمبر اصلي خطونه ورکړل. رابرټس د لارډ ليټن د هداياتو مطابق سمدستي هغهٔ له د دې خطونو په جواب کښې يو خط د دې مضمون وليږلو :

" ستا خپل خاص خواهش دا وهٔ چې يو انګريزي سفير دې زما په دربار کښې مقرر شي او زهٔ بهٔ پخپله د هغهٔ د حفاظت او د درونډ سلوک ذمه وار يم. په دې سبب ميجر

کیـویـګـنـري او دريڅ نـورو انـګریزي افسرانو ته اجازت وشو چې کابل ته درشي.[1] دا ټول افسـران پـه شپږو هـفتو کښې دننه دننه ستا د فوځ او ستا د رعیت د نورو خلقو د لاسه په بې رحـمـی سـره قتل شول او چونکې د دې واقعاتو نه دا صفا ښکاره ده چې تهٔ په خپل صدر مقام کښې هم نهٔ خو د خپلې عهدنامې د شرطونو د پوره کولو او نهٔ د خپلو اختیاراتو د استعمالولو طاقت په ځان کښې لرے. په دې سبب اوس دا تجویز دے چې یو انګریزي فوځ په کابل باندې پیـش قدمي وکړې. د هغوي په مخکښې دوه مقصده دي یو دا چې ستا حکومت مضبوط کړې پـه شـرط د دې چې تهٔ پخپله وفاداری سره د خپلې عهدنامې د شرطونو د پوره کولو کوشش وکـړې او بـل مـقصد ئ دا دے چې د انګریزي سفارت د قاتلانو نه پوره پوره بدل واخلي مګر سـره د دې چې هـز هـائـي نـس د خپـل څـلورم ستمبر په خط کښې په خپل دوستانه اخلاص بـانـدې ډیـر زور ور کـړے دے ولـې زمـونږ حکومت ته دا اطلاع رارسیدلې ده چې د کابل نه قـاصدان چارچاپیره په دې غرض استولي شوي دي چې د علاقې خلق او قبائل زمونږ برخلاف راوچـت کـړې شي او چـونـکـې دا کـار د دوستی د شان نـه برخلاف دے له دې کبله زهٔ دا ضـروري ګـڼـم چـې هـز هائي نس خپل یو اعتباري سړے ماته د خبرو اترو دپاره راولیږي چې هغه ماته ستا ټوله مدعا ښکاره کړې."

---

1. رابـرټـس د دې الـفاظو نه دنیا ته دا ښکاره کول غواړي چې د امیر یعقوب خان خواهش وهٔ چې د هـغـهٔ پـه صـدر مقام کښې دې یو انګریزي سفیر ته د دیره کیدو اجازت وشي. او دا د هغهٔ په درخواست وهٔ چې کمناري او د هغهٔ ملګرو ته خپل حکومت کابل ته د تلو اجازت ورکړو حالانکې دا خبره بالکل خلاف واقـع ده. د تیـر شـوي واقـعـاتو نه دا ثابته ده چې امیر شیر علي خان او د هغهٔ ټول وزیران او امیران په کابل کښـې د انـګـریـزي سفیر د تقررۍ برخلاف وو او لارډ لیټن ته ئ دا صاف وئیلي وو چې کهٔ چرې فیرنګے سفیـر پـه کـابـل کښـې مـقـرر شو نو امیر د هغهٔ د حفاظت ذمه واري نهٔ شي اخستے. د کمناري او د هغهٔ د مـلـګـرو تـقـرري د ټـول پښتـون قـام د مرضی نه خلاف او د انګریزانو د فوځي زور په وجه په عمل کښې راغـلـې وهٔ. او د ګندمک په عهدنامه کښې دا شرط په امیر یعقوب خان په زور منلے شوے وهٔ. دا هم ټولې دنیـا تـه مـعلومه ده چې د امیر شیر علي خان برخلاف انګریزي حکومت صرف په دې وجه د جنګ اعلان کـړے وهٔ چې هـغـهٔ د حـکـومت برطانیه دې شرط ته غاړه نهٔ ایښوده. وګورئ د فیرنګیانو دې بې ایمانی او دروغو ته.)

بل اهم کار چې رابرټس سمدستي وکړو هغه دا وۀ چې هغۀ د چارچاپیره ملک د خلقو د لویو لویو سردارانو او خانانو د امیر یعقوب خان او د هغۀ د امراؤ او وزراؤ خیالات د انګریزانو د موجوده پیش قدمۍ متعلق معلوم‌ولو دپاره هر طرف ته خپل مخبران او ایجنټان واستول. رابرټس پخپله په خپل کتاب کښې لیکي چې د امیر یعقوب خان د طرف نه ماته بالکل اطمینان حاصل نۀ وۀ. او زما دا یقین وۀ چې امیر په دې کوشش کښې لګیا دے چې غلجي او نور قبائل د فیرنګیانو برخلاف راوچت شي. په دې باره کښې د رابرټس په زړۀ کښې کۀ څۀ لږ ډیر شک پاتې وۀ نو هغه نواب غلام حسین خان په ښه طریقه لرې کړو. د نواب غلام حسین خان د نوم نه د دې تاریخ لوستونکي نا اشنا نۀ دي په دې ورځو کښې هغه د قندهار نه د کابل په لاره روان شوے وۀ خو چې د کمناري د قتل د واقعې نه په لاره خبر شو نو د کابل په ځاے علي خیلو ته رابرټس ته راغلو. چونکې غلام حسین خان هم مسلمان وۀ او د رابرټس آئنده ټول کار هم په مسلمانانو کښې وۀ او د دې نه علاوه چونکې نواب موصوف ډیر عمر په طور د انګریزانو د ایجنټ د امیر شیر علي خان په دربار کښې تیر کړے وۀ په دې وجه رابرټس د هغۀ رائ له ډیر وقعت ورکولو. چنانچه هغۀ رابرټس ته ووئیل چې اګر کۀ یعقوب خان د کمناري د قتل په سازش کښې شریک نۀ معلومیږي ولې دا یقیني خبره ده چې امیر د هغۀ او د هغۀ د ملګرو د بچاؤ دپاره هیڅ عملي قدم نۀ دے وچت کړے. او اوس هم یعقوب خان فیرنګیانو سره درغلي او فریب کوي. لوستونکو ته په دې خبره غور کول پکار وي چې د فیرنګیانو دې معزز نواب د امیر یعقوب خان برخلاف دا رائ بغیر د مقامي تفتیش او لویو لویو خلقو نه د تحقیق کولو نه بغیر د رابرټس د خوشحالولو دپاره هغۀ له ورکړه.

حقیقت دا دے چې یعقوب خان په خپله په دې ورځو کښې د خپل آئنده طرز عمل متعلق په سخت شش و پنج کښې پروت وۀ. یو طرف ته هغۀ ته صفا معلومیده چې کۀ چرې انګریزي فوځ په خپل پوره زور او طاقت سره په افغانستان کښې د کمناري او د هغۀ د ملګرو د قتل د بدل اخستو په غرض پیش قدمي وکړه او په کابل باندې فوځي قبضه وشوه نو دا ممکن نۀ ده چې انګریزي جرنیل او د هغۀ فوځ د اعتدال او د انصاف په حدودو کښې دننه پاتې شي. هر کله چې یو فاتح فوځ په بل مفتوح ملک کښې یو ځل دننه شي نو د مفتوح ملک ټول سرې زاړۀ او ځوانان، ښځې او بچې د هغوي کورونه، څاروي، مال متاع، د هغوي عزت، ننګ او آبرو د حمله آور فوځ په رحم باندې شي. او یو بادشاه او امیر دا برداشت کولے نۀ شي چې د هغۀ د سترګو په وړاندې دې د هغه ملک خلق د پردو فوځونو د لاسه بې عزته، تباه او سپک شي. خاص طور د پښتنو غوندې خوددار او غیرتي قوم نه دا څرنګ طمع کیدے شوه چې هغوي دې بې مقابلې خپل ملک د غیر قوم د لاسه لتاړ، مغلوب او بیوسه ووینې.

بل طرف ته د امیر یعقوب خان په زړهٔ کښې دا ویره پرته وه چې کهٔ چرې زهٔ دا وخت د فیرنګیانو مقابلې ته ودریږم نو نهٔ صرف دا چې زهٔ او زما ټول خاندان به د افغانستان د تاج و تخت نه همیش دپاره لاس وینځي بلکې په میدان جنګ کښې به د بیشانه ډیر ځانونو او مالونو تاوان هم کیږي.

دې کښې شک نشته چې د کمنارۍ او د هغهٔ د ملګرو په قتل کښې د امیر یعقوب خان هیڅ قسم لاس نهٔ وهٔ او نهٔ دا خبره وه چې ګنې هغهٔ د هغوي د بچاؤ دپاره پوره کوشش نهٔ وهٔ کړے ولې چونکې دا ټوله معامله ډیره ناساپې او د هغهٔ په بې خبرۍ کښې شوې وه د دې کبله هغهٔ د هغوي د حفاظت انتظام په کامیابۍ سره ونکړې شو. مګر هر کله چې دا معامله ختمه شوه نو د هغې نه لږ وخت پس امیر یعقوب خان په خپل فوځ او د خپل رعیت په نورو خلقو پوره قابو بیاموندو او د دې واقعې نه علاوه نور څهٔ فساد یا ورانے پیښ نهٔ شو. په دې حالاتو کښې د امیر یعقوب خان دپاره د مقبولیت او د غیرت صرف یوه لار پاتې شوه او هغه دا وه چې هغه د جرګو او ګفت و شنید په ذریعه انګریزي جنرل له دا ترغیب ورکړې چې د فیرنګیانو فوځونه دې په کابل باندې پیش قدمي نهٔ کوي او اصلي مجرمانو له د سزا ورکولو ذمه واري دې د هغهٔ په حواله شي. په انګریزي سفارت خانې باندې د چپاؤ معامله مخصوص ټولي کار وهٔ نه چې د ټول پښتون قام. د دې کبله د یو څو تنو د فعل سزا ټول قام له ورکول د انصاف د اصولو نه خلاف وو. دې کښې شک نشته چې رابرټس په شپاړسم ستمبر په خپل اعلان کښې دا خبره لیکلې وه "چې انګریزي فوځ ما سیوا د هغې کسانو نه چې چا د انګریزي سفارت په قتل کښې حصه اخستې وه بل هیچا ته سزا یا نقصان نهٔ ورکوي او نور ټول خلق دې کهٔ لوړے دي او کهٔ واړهٔ چې د چا دې معاملې سره تعلق نشته تسلي وساتي."

مګر څهٔ وخت چې یو فوځ د بل قوم په ملک باندې په فاتحانه شکل کښې په زور ورننوځي نو د دې قسم اعلانونه ایستل او بیا قدم په قدم د هغې خلاف ورزي کول څهٔ غیر معمولي څیز نهٔ دے. هر کله چې یو قوم په بل قوم باندې قابو بیامومي او د هغې بل قوم ټول خلق مغلوب او بیوسه پراتهٔ وي نو په دې قسم اعلانونو باندې عمل کول او د انصاف لاره نهٔ پریښودل ناممکن شي.

چنانچه رابرټس سره د دې اعلان نه هر کله چې په کابل باندې قبضه وکړه نو هغهٔ یو فوځي عدالت د بریګیډیر جنرل میسي د صدارت لاندې په ظاهره خو د دې غرض دپاره مقرر کړو چې هغه د هغې کسانو مقدمې سماعت کړي چې په چا باندې د سفارت د قتل الزام لګیدلے دے ولې په دې بهانه دې فوځي عدالت او د رابرټس پښتنو سره عامې بدسلوکۍ او ظلم د کابل او د هغې د مضافاتو په خلقو هغه سور تنور جوړ کړو او دومره خلق په بې رحمۍ سره پانسي شول چې د انګلستان اخباراتو او رسالو او په دارالعوام کښې د حکومت مخالفې

ډلې ممبرانو د رابرټس په دې رویه باندې سخته نکته چیني وکړه او حکومت برطانیه د هغهٔ نه د دې دومره خلقو د پانسي کولو جواب طلب کړو. مګر چونکې وزیر هند وائي کاؤنټ کرین بروک چې د قدامت پسند ډلې لوے رکن وۀ د هغهٔ په مرسته وۀ او حکومت ته په دارالعوام کښې اکثریت حاصل وۀ، له دې کبله د رابرټس برخلاف هیڅ کارروائي ونشوه او د هغهٔ جواب درست وګڼلے شو. د رابرټس دا طمع کول چې امیر یعقوب خان دې خپل ټول ملک او قام لاس تړلے فیرنګیانو ته حواله کړي څومره یو نامعقول سوال وۀ. د قام او د ملک مینه هغهٔ صرف د خپلو فیرنګیانو دپاره مخصوص ګڼله. د دې کبله په یعقوب خان کښې د دې قسم جذبه هغهٔ ته یو جرم ښکاریدو کهٔ چرې یعقوب خان د رابرټس او د حکومت برطانیه هر یو تجویز سره اتفاق کولے او بغیر د چون و چرا نه ئ په هغې عمل کولے خواه په هغې کښې د پښتون قوم بیخ کني او تباهي وے نو بیا خو یعقوب خان ډیر وفادار او ښهٔ سړے وۀ او کهٔ چرې هغهٔ د انصاف په اصولو باندې عمل کولو سره د خپل ملک او د قوم او د ملک د عزت د برقرار ساتلو کوشش هم کولے نو بیا چونکې د هغهٔ دا رویه د رابرټس او د انګریزي حکومت په هان کښې هان یو ځاے کول نهٔ وو. له دې کبله هغه "فریبي او درغل" وۀ.

لکه چې څرنګ وړومبے ذکر شوے دے رابرټس علي خیلو ته د رارسیدو نه پس هم په امیر یعقوب خان او هم د لوګر د درې په ټولو ملکانو او خانانو باندې سخت شکمن او بدګمانه وۀ لیکن هغهٔ دا ټول خیالات په خپل زړهٔ کښې پټ وساتل او د افغانستان خلقو ته ئ دا ښکاره کړه چې انګریزي فوځونه صرف په دې وجه په کابل باندې پیش قدمي کوي چې یو خو د سفارت قاتلانو له سزا ورکړي او بل دا چې د امیر یعقوب خان حکومت له استحکام او مضبوط والے ورکړي. چنانچه کوم اعلان چې هغهٔ په شپاړسم ستمبر 1879ء د علي خیلو په مقام کړے وۀ په هغې کښې او د درهٔ لوګر د ملکانو په نوم په یو خط کښې هغهٔ هم دا دواړه مقصدونه د انګریزي فوځ واضح کړي وو. د دې اعلان او خط نه د رابرټس دوه غرضه وو یو دا چې هغه د پښتنو په زړهٔ کښې دا خبره کښینوي چې انګریزي حکومت بغیر د هغې کسانو نه چې چا په انګریزي سفارت باندې قاتلانه حمله کړې ده بل هیچا له هم سزا او نقصان ورکول نهٔ غواړي او چونکې ټولو خلقو ته معلومه وه چې د دې قسم خلقو تعداد لږ دے له دې کبله د افغانستان نور خلق د فیرنګیانو په موجوده پیش قدمۍ کښې هډو دلچسپي نهٔ اخلي. د هغهٔ بل غرض دا وۀ چې انګریزي حکومت دا وخت د افغانستان او د موجوده حکومت او نظام برخلاف نهٔ دے او نهٔ په هغې کښې څهٔ دخل ورکول غواړي بلکې هغوي د امیر یعقوب خان حکومت او اقتدار مضبوطولو دپاره کابل ته ځي له دې کبله دې عام پښتانهٔ انګریزانو ته د دشمنۍ او د مخالفت په نظر نهٔ ګوري ولې د هغهٔ په زړهٔ کښې د افغانستان د آئنده سیاسي حیثیت متعلق چې کوم خیال موجود وۀ د هغې ذکر د دې نه وړومبے مونږ کړے دے او هغه دا

وهٔ چې دا خپل بـه انګرېزان د کابل نه بالکل نهٔ راوځي دا اعلان او خط مونږ بعينه لاندې درج کوؤ:

**Alikhel 16th Sep. 1879**

**"Be it known to all chiefs and the people of the country of Kabul and its dependencies that, in accordance with the Treaty concluded in May, 1879, corresponding to Jamadi-ul-Akhir 1296 Hijri, between the two great Governments, and to the terms of which His Highness the Amir expressed his assent, and agreed to the location of an Envoy of Her Imperial Majesty the Empress, a British Envoy was, at the special request of His Highness the Amir, located at the Kabul court, and the Amir guaranteed that he should be treated honourably and protected.**

**Within six weeks after the said Envoy was received at and entered Kabul the whole Embassy was beseiged and massacred in the very citadel of His Highness the Amir, who could not save or protect them from the hands of the soldiers and the people. From this, the lack of power of the Amir and the weakness of his authority in his capital itself are quite apparent and manifest. For this reason the British troops are advancing for the purpose of taking a public vengeance on behalf of the deceased as well as of obtaining satisfaction (lit consolidation) of the terms entered into the Treaty concluded. The British troops are entering Afganistan for the purpose of strengthening the .........**

ترجمه: علي خيل شپاړسم ستمبر 1879ء

د کـابـل د عـلاقې او د هغې د ملحقاتو ټولو خلقو او خانانو ته دې دا خبره معلومه وي چې د هغه عهدنامې مطابق چې په مئ 1879 ء مطابق جمادي الاخر 1296هجري کښې د دواړو حکـومتـونـو تر منځ شوې وه او د هغې شرطونه هز هائي نس امير منظور کړي وو او دا خبره ئې هم منلې وه چې د ملکهٔ معظمه انګلستان يو سفير دې مقرر شي. د هز هائي نس د امير پـه خـاص درخـواسـت يو انګريزي سفير د کابل په دربار کښې مقرر شو او امير دا ذمه واري واخسته چې هغهٔ سره به د عزت سلوک او د هغهٔ حفاظت هم کيږي.

د دې سـفيـر کـابل ته د رارسيدو نه پس شپږو هفتو کښې دننه د هز هائي نس امير په خپـله قلعه کښې د دې ټول سفارت محاصره وشوه او هغوی ټول قتل شول. ليکن امير هغوي نهٔ د سپاهيـانـو او نـهٔ د خـلـقو د لاسه بچ کړې شول. د دې خبرې نه د امير په خپل صدرمقام کښـې د خپل طاقت کمے او د اختياراتو کمزور والے ظاهر دے. په دې وجه انګريزي فوځونه پـه دې غرض پيش قدمي کوي چې د مقتولانو بدل د ټولو خلقو په مخکښې واخستې شي. او کوم شرطونه چې په عهدنامه کښې طے شوي دي د هغې مضبوطوالے راشي. انګريزي فوځونه پـه افـغـانسـتـان کښې د دې غرض دپاره رانوځي چې هغوي د هز هائي نس امير شاهي طاقت مـضبـوط کـړي بشـرطيکـه هـز هـائي نس هغه اختيارات په وفاداری حکومت برطانيه سره د

دوستی او د ښۀ تعلقاتو د قیام دپاره استعمال کړي. صرف هم دغه یوه طریقه ده چې د هغې په ذریعـه د امیر سلطنت سالم پاتې کیدے شي او د دوستی او د خلوص کوم جذبات چې امیر د دې واقعې نه پس د خپل څلورم ستمبر 1879ء په خط کښې ظاهر کړي دي هم په دې ذریعه ثابتیدے شي.

د دې غـرض دپـاره چې زمونږ د دې دوارو حکومتونو تر منځ د دوستی او د اتفاق په حقـلـه څۀ شـکـوک پـاتې نشي ما امیر ته خط لیکلے دے چې تۀ خپل یو اعتباري ایجنټ زما کیـمپ تـه راواستـوه. انګریزي فوځونه به بغیر د هغه کسانو نه چې چا د سفارت په قتل کښې حصـه اخستې ده او یـا پـه هـغـې کښـې شامل شوي وي بل هیچا له سزا یا نقصان نۀ ورکوي بشـرطیکه هغوي زمونږ مقابلې ته ونۀ دریږي. باقي ټول خلق دې خواه هغوي وارۀ وي یا لوے چې د چا دغې واقعې سره تعلق نۀ وي په دې تسلي وساتي. پکار دي چې د باربرداری وسائل او د هـر قسـم د رسـد سامان انګریزي فوځ ته راوړې شي. هر څیز چې د چا نه واخستې شو د هـغـې بـه پوره قیمت او کرایه ورکیدے شي. چونکې رحم او انسانیت د دې لوے حکومت په خـصـوصیـاتـو کښـې شـامـل دي د دې دپاره دا اعلان د عامو خلقو د اطلاع دپاره د اګاهو نه جاري شو.

ترجمه د هغه خط چې د درۀ لوګر ملکانو ته جنرل رابرټس لیکلے وۀ :

" د هـغې اعلان نه چې کوم ما د دې نه اګاهو ایستے دے تاسو ته به د هغې وجوهاتو پته لـګیـدلے وي د کوم په سبب چې انګریزي فوځونه کابل ته روان دي. د ملکۀ معظمه حکومت د دې فـوځـونـو د راوستـو نـه دا غرض لري چې د سفارت د قتل انتقام واخلي او هز هائي نس امیر له د خپل انتظام په قائمولو کښې امداد ورکړي. نور ټول هغه خلق چې دې قتل سره تعلق نۀ لري هغوي دې بالکل مطمئن وسیږي بشرطیکه هغوي مقابلې ته ونۀ دریږي.

هـز هـائـي نـس امیرپه خپلو خطونو کښې چې کوم ماته وصول شوي دي مونږ سره د خپـلـې دوستـی اظهـار کـوي او دا غـوارې چې مونږ سره خپل دوستانه تعلقات جاري وساتي چـونـکې انګریزي فوځونه به عنقریب زما د کمان لاندې د لوګر په دره کښې داخلیږي د دې دپاره زۀ دا خط ستاسو د تسلی دپاره لیکم او دا امید کوم چې تاسو به د درې هغه ټولو کسانو تـه چې د چـا دې قـابـل نـفـرت قتل سره تعلق نشته د دې اعلان مطلب واضحه کړئ او زما د فـوځـونـو دپـاره بـه د خـوراک د سامان او د باربرداری د وسائلو په مهیا کولو کښې هرقسم امـداد راکـړئ چې د هغې دپاره به پوره قیمت او کرایه ورکیدے شي. زۀ امید کوم چې د دې تسـلـی ورکـولـو نـه پـس بـه ټـول مـلـکـان زمـا لیدو دپاره زما کیمپ ته راشي او زۀ به ئې په خوشحالی هلته وګورم."

د دې اعـلان نقلونه رابرټس کابل ته غزني ته او د چارچاپیره علاقو قبائلو ته ولیږل او

په اتلسم ستمبر ئ د دې اعلان او خط نقلونه امیر یعقوب خان ته هم واستول. او دوباره ئ ورته ولیکل چې زۀ د خپل وړومبي خط د جواب او ستا او ستا د اعتباري نمائنده د راتلو لا هم هغه شان په انتظار یم او په اخر کښې ئ دا هم ورته ولیکل چې د حکومت هند د امداد په حقله تۀ پوره تسلي وساته.

په دې اثنا کښې د انګریزي فوځ یو بریګیډ د جنرل بیکر د کمان د لاندې په درۀ شتر ګردن باندې قبضه وکړه. او مورچې ئ پکښې جوړې کړې او تر کوشي پورې د لارې په جوړولو کښې مصروف شو او باقي فوځ د باربرداری د څاروو او د سامان رسد په فراهمی او سامان جنګ په رارسولو کښې شپه او ورځ لګیا شو. په شلم تاریخ امیر یعقوب خان رابرټس ته ولیکل چې زۀ خپل دوه اعتباري نمائنده ګان یو مستوفي (وزیر مال) حبیب الله خان او بل وزیر اعظم شاه محمد خان دراستوم. چنانچه دا دواړه کسان علي خیلو ته په یویشتم تاریخ راورسیدل او تر درویشتم ستمبر پورې ئ رابرټس سره دوه ملاقاتونه وکړل. په دې ملاقاتونو کښې دې دواړو سردارانو رابرټس ته په کابل باندې د انګریزي پیش قدمی برخلاف په داسې طریقه دلائل پیش کړل چې په هغې کښې د امیر یعقوب خان د طرف نه انګریزانو سره د مقابلې او د جنګ کولو اراده او نیت خو ښکاره نۀ وۀ لیکن رابرټس ته د امیر د طرف نه دا رائ ظاهره شوه چې هغه د انګریزانو دې پیش قدمی سره متفق نۀ دے. او له دې کبله پکار دي چې هغوي دا فوځي کارروائي ملتوي کړي. په کومو الفاظو کښې چې هغوي دا خپله مدعا رابرټس ته ښکاره کړه د هغې دلائلو خلاصه دا ده :

د انګلستان او د افغانستان مفاد یو دي او امیر او د هغۀ افسران د کابل په دې واقعه باندې بیحده ډېر غمژن دي. امیر د دې خبرې ډېر خواهشمند دے چې زۀ د حکومت برطانیه خواهش پوره کړم او د حکومت برطانیه وقار په هر هغه طریقه قائم شي چې کومه وائسرائے ته مناسب ښکاري. مګر هز هائي نس د دې نه هم چشم پوشي نشي کولے چې باغي فوځ او نور عام د رعیت خلق او فوځیان په دې ویره کښې پراتۀ دي چې بدل به بې امتیازه واخستې شي او د ګناه ګار او بې ګناه لحاظ به ونۀ ساتلے شي. له دې کبله هغه دا امید کوي چې کۀ د ویرې په سبب ټول خلق مقابلې ته راپاڅي نو چې د هغې متعلق بندوبست وشي.

رابرټس د دې دلیل برخلاف د خپل اعلان مورخه شپاړسم ستمبر حواله ورکړه ولې مستوفي په جواب کښې ووئیل چې دا خلق دومره جاهلان دي چې په هغوي باندې د اعلانونو اثر نۀ کیږي. بیا مخکښې هغوي د خپلو خبرو سلسله دا شان جاري وساتله. دا هم ممکن ده چې ټول خلق یوه ډله شي. پښتانۀ خودمطلبه او په خپلو کښې یو تر بله بې اتفاقه دي ولې بیا هم کۀ چرې دا شان خبره پیښه شي نو هسې نه چې د دې بیا په امیر الزام راشي. له دې کبله هغه دا مناسب ګڼي چې تاته خپله رائ ښکاره کړي او ټول واقعات کوم چې هغۀ ته معلوم دي

د حکومت برطانيه په مخکښې کيږدي. د يو خيرخواه په حيثيت د امير د مشورې خلاصه دا ده چې انګريزي فوځ دې په کابل خپله پيش قدمي يو پنځۀ ورځې ملتوي کړي. په دې منځکښې به هغه د باقاعده فوځ نه وسلۀ ټوله کړي او بيا به نوي نوکران ونيسي او د هغوي په ذريعه به هغه ټولو کسانو له سزا ورکړي چې چا په دې خراب کار کښې حصه اخستې ده. د امير دا اراده ده چې د شير علي خان د زمانې ټول زاړۀ سپاهيان لرې کړم او د مخکښې دپاره صرف پنځلس زره سړي وساتم. دا به ډيره ښه وي کۀ چرې پيش قدمي تر هغه وخته پورې ملتوي شي تر کومه چې هغۀ خپل طاقت قائم کړے نۀ وي. د امير دا مطلب نۀ دے چې افغان فوځونه به د انګريزانو مقابله وکړې شي خواه هغوي پنځوس زره په شمار کښې هم وي. د باغي فوځونو نۀ خو تنظيم شته او نۀ ئې مشران ولې په هغوي کښې د هرې قبيلې کسان شته نو کۀ چرې انګريزي فوځ هغوي تباه کړي (او ضرور به ئې تباه کړي کۀ چرې هغوي مقابلې ته راوځي) نو بيا به ټول ملک د فيرنګيانو او امير برخلاف يوه ډله شي. دغه وجه ده چې هغه وائي چې پيش قدمي دې ملتوي شي او د ګناه ګارو سړو سزا دې هغۀ ته پريښودې شي. وائسرائے دې تسلي ساتي چې هغه به په دې کسانو هيڅ رحم ونۀ کړي هغه به د هغوي نه دا شان نمونه قائمه کړي چې د ټولې دنيا په مخکښې به هغه لکه د رڼا ورځې ښکاره وي. اوس هم د کابل هر سړے امير ته کافر وائي ځکه چې هغۀ او د هغۀ ملګرو خپل نصيب قسمت حکومت برطانيه سره شريک کړے دے.

سره د دې ټولو خبرو چې دکومو ذکر وشو ممکن ده چې صورت حالات بالکل درست شي کۀ چرې باغي فوځونه په يو ځائے د مقابلې کوشش وکړي. ولې امير سره ويره ده چې هغوي به دا شان کار ونکړي بلکې غالباً چې هغوي به چارچاپيره خوارۀ شي او د ملک خلق به راپاځوي. په دې صورت کښې به بيا د انګريزي فوځ د تګ راتګ په لاره پرله پسې چپاوونه کيږي او د رسد سامان وغيره راټولول به ډير ګران شي.

ژمي ته صرف يوه مياشت پاتې ده دا ځوک نشي وئيلے چې څۀ به کيږي. ممکن ده چې هيڅ مقابله ونشي ليکن امير به هم هغه څۀ کوي چې ځرنګ د حکومت برطانيه خوښه وي ولې هغه دا خپل فرض ګڼي چې هغه خپله رائ ښۀ په کلکه بيان کړي چې موجوده موسم د پيش قدمۍ دپاره موزون نۀ دے. رابرټس په جواب کښې دا ووئيل چې زۀ د وائسرائے د طرف نه د امير صاحب د دې ښې مشورې شکريه ادا کوم او زما دا يقين دے چې دا مشوره د يو دوست مشوره ده ولې دا يوه اهمه معامله ده او غور طلب ده نو کۀ چرې تاسو نور څۀ وئيل غواړئ نو ووايئ.

د دې نه پس مستوفي رابرټس ته ووئيل چې کۀ چرې انګريزي فوځ ارومرو په کابل باندې راختل غواړي نو بيا دې په پوره طاقت کښې راشي چې د هر قسم مخالفت او مقابله

باندې غالب شي او په ټول ملک کښې د بغاوت بيخ وباسي.

رابرټس ووئيل چې د امير مشوره ډير اهميت لري او په هغې باندې فکر کول غواړي. هر کله چې اول اول هز هائي نس د کابل د دې فساد متعلق اطلاع ورکړه او امداد ئې وغوښتو نو د وائسراے وړومبے خواهش دا وۀ چې بغير د ډيل نه زۀ انګريزي فوځونه وليږم چنانچه ما ته حکم وشو چې تۀ فوراً کرمې ته لاړ شه او هغه ځاے نه د فوځونو کمان واخله. دې سره سم هغې فوځ ته چې د قندهار نه راروان شوے دے د تار په ذريعه قندهار ته د واپس کيدو حکم وشو او هغوي ته هدايت وشو چې قلات غلزئ باندې وروړاندې شئ. دا احکام صادر شول چې يو دريم فوځ دې په پيښور راجمع شي او ټول د امير د امداد دپاره وۀ. وائسراے سره د اګاهو نه د دغې عام بغاوت فکر وۀ د کوم چې اوس امير سره ويره پيدا شوې ده او په دې وجه دا ټول فوځونه د هز ايکسي لينسي په حکم باندې دومره طاقتور دي چې کۀ ټول افغانستان رايوځاے شي نو د يوې لحظې دپاره هم د هغوي مقابله نشي کولے. د قندهار فوځونه په لږ ساعت کښې تيار شوي دي او اوس د قندهار نه په مخکښې د کابل په لاره راوړاندې شوي دي، د پيښور فوځونه هم زر زر رايوځاے شول او پيش قدمي ئې کړې ده نو امير دې تسلي وساتي چې انګريزي فوځونه به په ښۀ زور کښې وړاندې راروان وي. ولې زۀ به بيا هم د امير په مشوره غور وکړم ځکه چې هغه ډير اهميت لري. مګر هز هائي نس له دا ياد ساتل پکار دي چې د کابل واقعه صرف د يو څو انګريزي افسرانو او د پنځوسو شپيتو تنو معامله نۀ ده چې په فريب سره قتل شول بلکې دې سره د ټول انګريزي حکومت د عزت سوال وابسته دے او تر کومه پورې چې د دې افسرانو او سړو نعشونه په کابل کښې د ښخيدو نه بغير پراتۀ وي تر هغې به زما په خيال د فيرنګيانو د قوم تسلي هيچرې ونشي. هغوي به د دې مطالبه کوي چې انګريزي فوځ دې پيشقدمي وکړي او د دې جرم سزا دې پوره پوره ورکړې شي. مګر بيا هم د امير مشوره چې زما يقين دے چې د يو دوست مشوره ده او د غور قابله ده زۀ به په هغې سوچ وکړم او بيا به پسته جواب درکړم.

مستوفي حبيب الله خان بيا ووئيل چې د انګريزي فوځ د طاقت متعلق چې تا څۀ ووئيل په هغې مونږ پوهه شو دې کښې شک نشته چې دا فوځ کافي دے او ټول افغانستان د هغې مخې ته نشي ودريدې ليکن امير مونږ ته وينا کړې ده چې دا هم تاته ووايو (خو ما نه دا خبره هيره شوې وه) چې په ترکستان کښې شليريشت رجمټې د پياده، شپږ د رسالې او شپږ پنځوس توپې موجودې دي. د ټولو نه وړومبے په دې فوځونو کښې د مزار شريف په مقام د بغاوت آثار ښکاره شوي وو او د بهر د دشمنانو نه علاوه عبدالرحمٰن خان او د عظيم خان زامن هم د موقعې په داؤ کښې ناست دي! بيا د هرات متعلق هم شک دے نو هر کله چې د هغه ځاے فوځونه د کابل د واقعاتو نه خبر شي نو دا څوک نۀ شي وئيلے چې هغوي به څۀ

کوي. کهٔ چرې دا خلق عبدالرحمن خان ځان سره رضا کړل نو هرات او ترکستان به د همیش دپاره د افغانستان د حکومت نه پریکړې شي. دا هم یوه بله وجه ده چې د هغې په سبب پکار دي چې د انګریزي فوځونو پیش قدمي ملتوي شي او امیر له د هرات او د ترکستان د فوځونو خپل ځان ته د را اړولو موقعه په لاس ورشي. جنرل رابرټس په جواب کښې ووئیل چې په دې ټولو وجوهاتو باندې به پوره غور وشي د وائسراے وړومبے حکم خو دا دے چې فوراً د امیر د امداد دپاره پیش قدمي وکړئ ولې زما دا یقین دے چې د هز هائي نس مشوره دوستانه ده او په هر صورت به هغه حکومت برطانیه سره د تعاون کولو انتهائي کوشش کوي له دې کبله به په هغې ټولو خبرو چې کومې امیر تاسو ته ، ماته د وینا دپاره کړي دي، پوره پوره غور کیږي.

مستوفي : وائسراے دې دا پوره تسلي ساتي چې امیر به هم هغه څهٔ کوي چې څهٔ د وائسراے خوښه وي.

وزیر : هر کله چې امیر ته د جنرل رابرټس د چیټئ نه دا پته ولګیده چې وائسراے د دې ټولې معاملې په حقله رابرټس له ټول اختیار ورکړے دے نو هغه ډیر خوشحاله شو ځکه چې هغه د هغهٔ د اخلاقو او نرم دلئ نه خبر وهٔ.

جنرل رابرټس په جواب کښې ووئیل چې زهٔ به په هغه ټولو تجاویزو چې کوم ماته پیش شول ډیر ښهٔ غور وکړم او پس ته به د هغې جواب ورکړم. په دې منځکښې زهٔ تاسو دواړو ایجنټانو ته دا سوال کوم چې یوه دوه ورځې زما په کیمپ کښې پاتې شئ چې زهٔ تر هغې پورې د امیر مشوره ښه وتلم ځکه چې هغه هم د انګریزانو دپاره او د افغانستان د حکومت دپاره ډیر اهمیت لري. اخر رابرټس دا دواړه سرداران په پنځویشتم تاریخ د خپل کیمپ نه رخصت کړل او لاندینے خط ئ د امیر یعقوب خان په نوم هغوي له ورکړو :

هز هائي نس امیر کابل ته

کیمپ علي خیل پنځویشتم ستمبر 1879ء (یور هائي نس)

( پس د سلام نه) ما ته د آنجناب دوه خطونه یو د نولسم او بل د شلم ستمبر (مطابق اول او دویم شوال) د آنجناب د دوؤ اعتباري نمائنده ګانو مستوفي حبیب الله خان او وزیر شاه محمد په لاس راورسیدل. زهٔ د آنجناب ډیر مشکور یم چې تا ما له د مستوفي او د وزیر غوندې دوه نامتو او د لوېې درجې کسان راواستول. هغوي ماته د آنجناب د خواهشاتو په حقله پوره خبر راکړو او زهٔ د هغوي په ټوله وینا باندې ښهٔ پوهه شوم. دا بدقسمتي ده چې موسم دا شان اخر دے او ژمے به ډیر زر داخل شي ولې دومره وخت لا شته چې د زیاتې یخنی نه وړومبے انګریزي فوځ کابل ته را ورسي.

کوم درخواست چې آنجناب د مشورې او د امداد د غوښتو دپاره د دریم او څلورم

ماه حال په خطونو کښې کړے دے د هغې متعلق وائسرائے هند سره ډير فکر وۀ چې په هغې کښې بالکل ډيل ونشي. د هز ايکسي لنسي ډير خواهش وۀ چې زمونږ فوځونه دې سمدستي په کابل باندې په دې غرض پيش قدمي وکړي چې يو خو د آنجناب ذاتي سلامتي بالکل يقيني شي او بل دا چې آنجناب له ستا په خپل صدر مقام کښې د امن او د انتظام په قائمولو کښې امداد حاصل شي. د بدقسمتئ نه د باربردارئ د وسائلو د کمي په سبب او دا چې د سامان رسد يو خاص مقدار راجمع کول هم ضروري وو په دې سبب د يو څو هفتو ډيل پيښ شو. مګر د وائسرائے دپاره دا خبره د تسلي او د خوشحالئ باعث شوه چې د آنجناب ذاتي سلامتي في الحال په خطره کښې نۀ ده او د هز اکسي لنسي دا يقين دے چې آنجناب به تر هغې پورې په خپل حکومت کښې پوره امن و امان وساتلے شي تر څو چې انګريزي فوځونه کابل ته رسيدلي نۀ وي.

زۀ آنجناب ته په خوشحالئ د دې خبرې اطلاع ورکوم چې پرون ماته خبر راغے چې يو لوے فوځ د قندهار نه د يو بهادر او نامور افسر د کمان لاندې راروان شو او د فوځ يوه بله دسته د جنرل برائټ د کمان لاندې د پيښور نه جلال اباد ته او په وړاندې د ګندمک په لاره کابل ته په شتاب روانه ده. زۀ اميد کوم چې زما خپل فوځ به هم ډير زر د رارروانيدو قابل شي. آنجناب ته به علم وي چې د يو څو ورځو نه مونږ په شترګردن قبضه کړې ده په دې منځکښې د رسالې او پياده رجمنټې سره د توپخانې کرمې ته د دې غرض دپاره راورسيدل چې يو خو هغوي د هغه فوځونو ځاے ونيسي کوم چې زۀ ځان سره کابل ته بوتلل غواړم او بل دا چې کۀ چرې ماته د نورو فوځونو ضرورت پيښ شي نو چې هغوي زما د فوځ دستې له هم کومک ورکړي اګر چې زما دا يقين دے چې دې کومک ته به بالکل ضرورت نۀ پيښيږي.

چونکې وائسرائے هند سره د آنجناب د سلامتۍ او د حفاظت ډير فکر دے له دې کبله هغۀ دا حکم کړے دے چې په دې درې واړو فوځونو کښې دې (کوم چې د قندهار، کرمې او خيبر نه روان شوي دي) هر يو فوځ دومره مضبوط وي چې هغوي په هر هغې مقابلې باندې غالب راشي کومه چې ممکن ده چې د آنجناب د دشمنانو د طرف نه هغوي ته پيښنه شي. د فوځ د دې هرې يوې دستې د مضبوطوالي متعلق هيڅ شک و شبه نشته. ماته دا پته لګيدلې ده چې په قلات غلزئ کښې او نۀ په غزني کښې دا شان خلق شته چې هغوي زمونږ د فوځونو پيش قدمي د قندهار د طرف نه بنده کړي. په دې سبب هيڅ وجه نشته چې هغوي دې ولې کابل ته په ډيره لږه موده کښې را ونۀ رسي.

د خيبر قبائل د صلحې په هغه عهدنامه چې کومه د آنجناب او د حکومت برطانيه ترمنځ په تيره شوې مئ کښې شوې وه ښۀ پوهه شوي دي او د هغې قدر کوي. په دې وجه هغوي بالاتفاق دا فيصله کړې ده چې مونږ به د پيښور انګريزي فوځونو له په هره طريقه امداد

ورکوؤ او اوس هغوي د دې خبرې ډېر خواهش مند دي چې د خیبر لاره دې محفوظ وساتي او خپل د باربرداری ټول څاروي دې انګریزي کمانډر ته په خدمت کښې پیش کړي. په دې طریقه به انګریزي کمانډر په کابل باندې دخپلو فوځونو په شتاب سره په راجمع کولو کښې کامیاب شي. د آنجناب په مهرباني ماته د توقع نه ډېر کم مشکلات پیښ شوي دي او زهٔ د معقول وجوهاتو په بنا د دې خبرې امید کوم چې زهٔ به زر آنجناب څخه ورسم او کهٔ نهٔ وي نو کم از کم دقندهار او د خیبر فوځونو سره سم به در ورسم. زهٔ د آنجناب سره د ملاقات کولو د موقعې په ډېر اشتیاق سره منتظر یم او امید کوم چې تهٔ به ماله د سامان رسد او د باربرداری د وسائلو په مهیا کولو کښې امداد بدستور جاري وساتې.

ما د آنجناب په دې تجویز ډېر په ښهٔ شان سره غور وکړو چې آنجناب دې پخپله باغي فوځونو او هغې کسانو له د جائزې سزا ورکولو مجاز شي چې چا د انګریزي سفیراو د هغهٔ د ورکوټې محافظې دستې په فریبانه او ظالمانه قتل کښې حصه اخستې ده او دغه شان دې د ملکه معظمه فوځونه د هغې تکلیف، سختي او فاقو نه بچ شي چې کوم به هغوي ته پیښیږي. زهٔ د وائسرایے او د حکومت هند د طرفه د آنجناب د دوستانه احساساتو د دې مزید ثبوت دپاره ډېر په خوشحالي سره د آنجناب شکریه ادا کوم. په معمولي واقعاتو کښې به ما ستا دا پیشکش ډېر په خوشحالي او په شکریه منظور کړے وهٔ ولې کوم واقعات چې اوس دا وخت پیش شوي دي د هغې په سبب زما یقین دے چې د فیرنګیانو د دې لوے قوم به تر هغې پورې تسلي ونشي تر څو پورې چې انګریزي فوځ په کابل باندې پیش قدمي نهٔ وي کړے. او په هغه ځاے کښې ئ آنجناب له د داسې قسم د سزا ورکولو دپاره امداد نهٔ وي ورکړے. چې د کومې دا بزدلانه او وحشتناک فعل مستحق دے.

ما د آنجناب اصلي خطوط وائسراے ته واستول زما د دې جواب نقل به د نن په ډاک کښې د هز ایکسي لنسي د غور دپاره ولیږلے شي. په دې اثنا کښې ما مستوفي حبیب الله خان او وزیر شاه محمد له زما نه د رخصت اخستو او آنجناب سره د یو ځاے کیدو اجازت ورکړو.

د رابرټس د زباني ګفتګو نه چې کوم هغهٔ مستوفي حبیب الله خان او وزیر شاه محمد سره وکړه او د هغې خلاصه مونږ بره ذکر کړې ده او د دې خط نه هم چې کوم هغهٔ د امیر یعقوب خان ته د دې دوؤ سردارانو په لاس واستولو معلومیږي چې هغهٔ پښتنو سردارانو، امیر یعقوب خان او پښتون قوم ته دا خبره ښکاره کوله چې د انګریزي فوځ موجوده پیش قدمي د امیر یعقوب خان په درخواست، یو د هغهٔ د حکومت د استحکام او د هغهٔ د اختیاراتو مضبوطولو دپاره تجویز شوې ده او بله دا چې د انګریزي سفیر او د هغهٔ د ملګرو قاتلانو له د مناسب او ضروري سزا په ورکولو کښې انګریزي فوځ د امیر یعقوب خان امداد وکړي.

بهرصورت د رابرټس د دې ګفتګو او د دې خط د طرز تحرير نه دا شان معلوميده لکه چې انګريزي فوځونه به د دې دواړو مقصدونو د حصول دپاره د امير يعقوب خان د احکامو او د هغهٔ د خواهش د لاندې کار کوي. حالانکې د ابتدا نه نهٔ خو د وائسراے او نهٔ د رابرټس په حقيقت کښې دا اراده وه بلکې د شروع نه رابرټس د امير يعقوب خان په نيت باندې شکمن وهٔ او دا ئ يقين وهٔ چې فيرنګيانو سره فريب او درغلي کوي. دا باقي ټولې خبرې هغهٔ هسې د ظاهرداري او دې دپاره هغهٔ ته کولے چې هغه د انګريزي حکومت په اصلي ارادو پوهه نهٔ شي. او په دې طريقه امير موصوف خپل ځان او خپل تاج و تخت د فيرنګيانو د لاسه بالکل محفوظ وګڼي. او ښکاره په ښکاره د هغوي مقابلې ته ميدان جنګ ته را ونهٔ وځي. بلکې د رابرټس فوځ سره د سامان رسد وغيره امداد وکړي او د قام نور خلق هم د پاڅيدو او د خپل ملک دپاره د جنګيدو نه منع کړي. په دې ګفتګو او خط کښې رابرټس يعقوب خان ته د دې خبرې د ښودلو کوشش هم کړے دے چې انګريزي فوځ په ډير زور او طاقت کښې او په ډير لوے شمار د درې طرفو نه په کابل راروان دے. د دې مدعا دا وه چې کهٔ چرې امير يعقوب خان يا د نورو سردارانو په زړهٔ کښې د مقابلې کولو څهٔ اراده وي نو چې هغه په دې خبره کمزورې شي. حالانکې د لام د شروع نه په دې درې واړو فوځونو کښې صرف يو د رابرټس د فوځ په حقله دا خيال کيدے شو چې هغه به په کابل باندې پيش قدمي وکړې شي. ليکن د باربرداري د څاروو د کمي په سبب په هغهٔ کښې هم د سمدستي روانيدو طاقت نهٔ وهٔ. کهٔ چرې دا وخت د يوې مضبوطې ارادې او کلک زړهٔ پښتون د افغانستان امير وے نو هغهٔ به په دې اثنا کښې دومره طاقت او لښکرې راجمع کړې وے چې د رابرټس دا مختصر فوځ به ئ يو ليشت مخکښې کيدو ته پريښې نهٔ وهٔ مګر يعقوب خان لکه چې څرنګ وړومبے ذکر شوے دے د يوې کمزورې ارادې او کمزوري زړهٔ خاوند وهٔ. نهٔ خو په هغهٔ کښې قوت فيصله وهٔ او نهٔ د لويو لويو مقاصدو د حاصلولو دپاره په هغهٔ کښې د حوصلې لوے والے وهٔ. د فيرنګيانو غوندې د منظم او متفق قوم د مقابلې دپاره يو ځيګرور او د ارادې پوخ پښتون پکار وهٔ چې نهٔ ورسره د خپل ځان فکر وے او نهٔ د تاج و تخت بلکې دا هر يو څيز ئ د پښتون په وقار، عزت او آبرو باندې قربانولې. په يعقوب خان کښې د دې ټولو خبرو کمے وهٔ له دې کبله باوجود د دې چې هغه د رابرټس د چل ول په دې ټولو خبرو ښهٔ پوهيدو او سره د دې چې هغه په دې هم ښهٔ رسيدلے وهٔ چې زما دپاره د خودداري، د غيرت او د پښتو صرف دا يوه لاره ده چې زهٔ په ميدان جنګ کښې د خپل ملک او د قام د آبرو ساتلو دپاره د حمله آور فوځونو د مقابلې دپاره راوځم. ولې هغهٔ تر اخره پورې د دې پاک مقصد دپاره د ملا ترلو فيصله ونکړې شوه او دوه درې ورځې پس ئ ځان د راتلونکو جنګ جګړو نه د خلاصولو دپاره فيرنګيانو ته د کوشي په مقام حواله کړو. او دغه شان پښتون قام بيا بې مشره او بې

رهنما پاتې شو او د يو بيروني حکومت د عظيم الشان فوځي نظام په مخکښې بې لاسو بې پښو پريوتو. دغه د شخصي حکومت خرابي وي چې د ټول قوم مرګ او ژوند صرف د يو سړي ارادې سره تړلې وي. کۀ چرې دغه يو سړے د دشمن په قابو کښې ورشي نو ټول قوم بې دست و پا شي. ولې د دې برخلاف کۀ چرې د ملک او قام اصلي واګې او اختيارات د يوې نمائنده جرګې په لاس کښې وي نو تر کومه پورې چې د قام يو کس هم ژوندے وي نو تر هغې د ملک نظام درهم برهم کيدے نشي او د يو مشترک دشمن مقابله تر اخر دمه پورې جاري ساتلې شي. دغه شان د يعقوب خان ميدان نه تښتيدلو د پښتون د منظمې مقابلې خاتمه وکړه.

هرکله چې د رابرټس او د يعقوب خان ترمنځ دا د چل ول خبرې رواني وې نو رابرټس هدايات جاري کړل چې د کوشي په مقام دې د ټول فوځ دپاره د خوراک دومره لوے مقدار راجمع کړې شي چې تر کابل پورې کافي وي او چې بيا د غلې د کمي په سبب په لاره د حصاريدو ضرورت بالکل پاتې نۀ شي. د دې غرض دپاره هغۀ دا مناسب وګڼل چې څومره ډيرې ورځې زۀ په علي خيلو کښې پاتې شم نو هغه هومره به زما دپاره ښه وي. ځکه چې تر کومه زۀ په علي خيلو کښې يم نو تر هغې به پښتانۀ زما په اصلي اراده نۀ پوهيږي او ممکن ده چې هغوي دا خيال وکړي چې رابرټس د امير په خبرو اترو په کابل باندې د پيش قدمۍ کولو نه پاتې شو ولې کۀ زۀ يو ځل د شترګردن نه ووتم نو ټول خلق به پوهه شي چې اوس په کابل باندې لام دے او د کومو خلقو چې مقابلې کولو ته نيت وي هغوي به ټول د راپاخيدو کوشش وکړي. په دې صورت کښې بيا په کابل باندې دومره په شتاب پيشقدمي پکار ده چې خلقو ته د منظم کيدو موقع په لاس ورنشي. هرکله چې د خرڅ خوراک دا مقدار را يوځاے شو نو رابرټس دا لانديني فوځي فرمان د خپلو فوځونو په نوم جاري کړو :

"The Government of India having decided that a force shall proceed with all possible dispatch to Kabul, in rosponse to His Highness the Amir's appeal for aid, and with the object of evenging the dastardly murder of the British representative and his escort, Sir Fredrick Roberts feel sure that the troops under his command will respond to the call with a determination to prove themselves worthy of the high reputation they have maintain during the recent campaign.

The major general need address no words of exhoration to soldier whose courage and fortitude have been so well proved. The Afghan tribes are numerous, but without organisation; the regular army is undiciplined, and whatever may be the disparity in numbers such foes can never be formidable to British troops. The dictates of humanity require that a distinction should be made between the peaceable inhabitants of Afghanistan and the treacherous murderers for whom a just retribution is in store, and Sir F. Roberts desires to impress on all ranks the necessity for treating the unoffending population with justice, forbearance, and

clemency.

The future comfort and the well-being of the force depend largely on the friendliness of our relations with the districts from which supplies must be drawn; prompt payment is enjoined for all articles purchased by departments and individuals, and all disputes must be at once reffered to a political officer for decision.

The major general confidently looks forward to the successful accomplishmnet of the object of the expedition, and the establishment of order and a settled Government in Afghanistan."

ترجمه :" چونکې حکومت هند د هز هائي نس امير د امداد د سوال په جواب کښې او د دې غرض دپاره هم چې د انګريزي نمائنده او د هغهٔ د محافظې دستې د بزدلانه قتل بدل واخستې شي دا فيصله کړې ده چې يو فوځ دې ډير په شتاب سره کابل ته روان شي. په دې سبب د سر فريډرک رابرټس دا يقين دے چې کوم فوځونه د هغهٔ د کمان د لاندې دي هغوي به د دې دعوت په جواب کښې په داسې عزم سره راپاځي چې هغوي به خپل ځان د هغې لوے نوم مستحق ثابت کړي کوم چې هغوي په ورروستني جنګ کښې پيدا کړے وهٔ.

ميجر جنرل موصوف د دې خبرې ضرورت نهٔ ګڼي چې هغه سپاهيانو ته د منت ځهٔ الفاظ استعمال کړي ځکه چې د هغوي جرأت او حوصله په ښهٔ شان سره ثابته ده. دې کښې شک نشته چې افغان قبائل بيشماره دي ليکن هغوي بې تنظيمه دي د هغوي باقاعده فوځ کښې هم ضبط يعنې ډسپلن نشته او هر څومره لوے فرق چې د هغوي او زمونږ په شمار کښې وي ولې دا شان دشمن د انګريزي فوځونو په مقابله کښې هيڅ وقعت نهٔ لري. د انسانيت د اصولو تقاضا ده چې د افغانستان په پرامن باشنده ګانو او په هغه فريبي قاتلانو کښې دې تميز وشي چې د چا دپاره سخته سزا انتظار کوي او سر فريډرک غواړې چې د هرې يوې عهدې سړي باندې د دې خبرې ضرورت محسوس کړي چې هغوي بې ضرره باشنده ګانو سره د انصاف ، صبر او رحم سلوک وکړي.

د فوځ آئنده ارام او خيريت زيات تر د هغې اضلاعو خلقو سره په خوشګوار تعلقاتو باندې منحصر دے د کومو نه به چې مونږ له د سامان رسد د حاصلولو ضرورت پيښيږي. په دې وجه دا ضروري ده چې کوم څيزونه د مختلفو محکمو يا د بيلو بيلو سړو د طرف نه اخستې شي نو د هغې قيمت دې سمدستي ادا شي او کهٔ چرې په قيمت باندې څهٔ تنازعه پيښه شي نو هغه دې فوراً يو پوليټيکل افسر ته د فيصلې دپاره حواله شي. ميجر جنرل موصوف سره د دې خبرې په شوق سره منتظر دے چې د دې مهم مقاصد به ډير په کاميابۍ سر ته رسي او په افغانستان کښې به يو باقاعده حکومت او نظام قائم شي."

په اويشتم نومبر رابرټس پخپله د فوځ يوې مضبوطې دستې سره کوشي ته روان شو

چې په هغه ځاے کښې بريګېډير جنرل بيکر د څۀ مودې نه قبضه کړې وه. د شتر ګردن په کنډو کښې په رابرټس باندې د قومي خلقو يوې ډلې ډزې وکړې او ډاکټر ټاؤنشينډ نومے د رابرټس يو ملګرے ئې چې هغه وخت د رابرټس په خوا کښې په اس سور روان وۀ سخت ژوبل کړو. د انګريزي فوځونو او د دې غازيانو تر منځ په شترګردن کښې يوه ښه مضبوطه مقابله وشوه ليکن څۀ خاص نتيجه ئې راونۀ وتله. او رابرټس خپله پيشقدمي جاري وساتله. د کنډو په سر کښې رابرټس شپه وکړه او هم په دې ځاے کښې هغۀ له د امير يعقوب خان د طرفه د هغۀ د پنځويشتم ستمبر د خط دا جواب راورسيدو :

"منجانب امير کابل از مقام کوشي مورخه اوويشتم ستمبر 1879ء

پس د سلام نه، ستا دوستانه خط ماته اوس په دې ساعت اتۀ بجې ماښام په لسم شوال (مطابق اوويشتم ستمبر) راورسيدو او زما د محبت ډک زړۀ باندې ئې د خوشحالۍ او بشاشت دروازې پرانستې. زما دا پوره يقين او اعتبار دے چې شهنشاه معظمه د فاتح فوځونو نقل و حرکت صرف د دې دپاره دے چې زما د حکومت بنيادونه مضبوط کړي او زما د سلطنت بيخونو ته تقويت ورسوي. دا رښتيا ده چې د يو دوست بل دوست سره همدردي کول لائق او مناسب دي او يو مخلص او وفادار دوست سره د يو لوے حکومت مهرباني او کرم د خوشحالۍ او د مسرت باعث دے. زۀ د عاليه حکومت برطانيه د نمائنده ګانو نه بيحده ډير زيات خوشحاله يم او د هغوي مشکور يم چې هغوي زما په خقله د ملګرتيا او همدردۍ اظهار کړے دے. ستا دا دوستانه او دانشمندانه تجويز چې د افغانستان په جاهلو قبائلو کښې دې يو هم د انګريزي افواجو مقابلې ته ونۀ دريږي د دې دپاره چې د حکومت برطانيه افسران په بهتر طريقې سره زما امداد او حفاظت وکړي. يو ډير معقول او مقبول تجويز دے. ستا د چيټۍ د رارسيدو نه وړومبے ما د جلال اباد او لالپورې ګورنرانو ته پرله پسې احکام استولي وو چې د انګريزي افواجو مقابلې يا مخالفت ته هيڅوک هم پرې نۀ ږدئ او د جلال اباد ګورنر ته ما بيا تاکيدي احکام ليږلي دي چې تۀ په دې باره کښې خپل انتهائي وس او کوشش وکړه. کوم حکم چې ما د جلال اباد ګورنر ته استولے دے هغه به سبا له تاته وښودلے شي او يو خاص قاصد به ئې دروړي."

د دې خط نه علاوه د امير يعقوب خان د دربار نورو سردارانو لکه د هغۀ ترۀ سردار ولي محمد خان وغيره هم د خپلې خپلې وفادارۍ او عقيدت مندۍ خطونه رابرټس ته راواستول. هم په دې ځاے کښې رابرټس له دا اطلاع هم راورسيده چې امير يعقوب خان پخپله سره دخپل زوي موسیٰ خان چې دا وخت د اوو کالو وۀ او سره د خپل سخر سپه سالار داؤد شاه او نور پنځۀ خلويښت سردارانو او دوۀ سوۀ سرو کوشي ته د بيکر په کيمپ کښې رابرټس سره د ملاقات کولو دپاره ناست دے.

رابرټس د شتر ګردن د حفاظت دپاره د خپل فوځ يوه دسته د لفټيننټ کرنل مني د کمان لاندې پرېښوده او پخپله سحر وختي د کوشي په طرف روان شو. په کوشي کښې د هغهٔ ورومبۍ ځل ملاقات امير يعقوب خان سره وشو. سره د يعقوب د دومره خوشامندو او د حکومت برطانيه سره د اظهار وفادارۍ رابرټس چې کومه رائ هغه وخت د هغهٔ متعلق قائمه کړه هغه رابرټس په خپل کتاب کښې په دې الفاظو ليکلې ده:

" I cannot say that I was favourably impressed by his appearance. He was an insignificant-looking man about thirty two years of age, with a receding forehead, a conical-shaped head, and no chin to speak of, and he gave me the idea of being entirely wanting in that force of character without which no one could hope to govern or hold in check the warlike and turbulent people of Afganistan. He possessed; moreover, of a very shifty eye, he could not look one straight in the face, and from the first I felt that his appearance tallid exactly with the double-dealing that had been imputed to him. His presence in my camp was a source of the gravest anxiety to me. He was constantly receiving and sending messages, and was no doubt giving his friends at Kabul all the informations he could collect as to our resources and intentions. He had, however, come ostensibly as our ally, seeking refuge from his mutinous soldiers, and whatever suspicions I might secretly entertain, I could only treat him as an honoured guest, so long as there was nothing proved against him."

ترجمه :" زهٔ دا نشم وئيلې چې د هغهٔ د شکل و صورت په ما باندې څهٔ ښهٔ اثر وشو. هغه قريباً د دوه دريش کالو د عمر يو ورکوټې شان سړې وهٔ چې تندې ئ چپ او سر ئ سوکيالې وهٔ او څهٔ قابل ذکر زنه ئ هلو وه نه. هغه ماته يو دا شان سړې ښکاره شو چې په چا کښې هغه اخلاقي طاقت بالکل مفقود وي چې د هغې نه بغير هيڅوک هم د افغانستان په جنګيالي او توريالي قبائلو باندې د حکومت يا قابو کولو اميد نشي کولې. د دې نه علاوه د هغهٔ د سترګو بالکل تکاونه نهٔ وه. هغهٔ چا ته سم نيغ کتې نهٔ شو او ورومبي ځل چې ما هغه وليدو نو ما محسوس کړه چې د هغهٔ د شکل نه د هغهٔ دورنګي صفا ښکاري. کومه چې هغهٔ ته منسوب کيدې شوه. زما په کيمپ کښې د هغهٔ موجودګي زما دپاره سخته د تشويش باعث وه. هغهٔ له به هروخت خبرونه راتلل او هغهٔ به هم خبرونه ليږل او دې کښې هيڅ شک نشته چې هغهٔ کابل ته خپلو دوستانو له هغه ټول خبرونه واستول چې کوم هغهٔ زمونږ د ارادو او د وسائلو متعلق جمع کولې شول مګر چونکې هغه په ظاهره مونږ له په طور زمونږ د اتحادي راغلې وهٔ او د خپلو باغيانو سپاهيانو نه ئ مونږ سره پناه اخستې وه نور هرڅومره شکونه چې زما په زړهٔ کښې پټ د هغهٔ برخلاف پراتهٔ وو ولې تر څو پورې چې د هغهٔ برخلاف څهٔ الزام ثابت شوې نهٔ وه، نو ما هغهٔ سره ماسوائ د يو معزز ميلمه بل قسم سلوک نهٔ شو کولې."

يو تعليم يافته فيرنګي او درحقيقت د يو ازاد قوم يو کس هم د يو داسې بې زړهٔ او بې

همته سړي قدر او احترام نشو کولے چې هغهٔ صرف د خپل ځان او د خپل تاج او تخت دپاره خپل قام او ملک د غير قام او فوځ په رحم پريښودو ته تيار وهٔ. او په يو داسې وخت کښې ئې د خپل قام مشري او رهنمائي پريښوده چې د هغوي د ژوندون او د تاريخ نازک ترينې او خطرناکې ګړۍ وې. د امير يعقوب خان د کمزوردلۍ دا نتيجه شوه چې هغه هم د فيرنګيانو په سترګو کښې سپک او بې اعتباره شو او هم د قوم په نظر کښې بې عزته او بې قدره شو. په کوشي کښې څهٔ وخت چې ورومبے ځل رابرټس سره ملاقات وکړو او هغهٔ ته ئې ووئيل چې په کابل باندې خپله پيش قدمي تر هغې ملتوي کړه تر کومه چې ما په خپل فوځ کښې تنظيم نهٔ وي پيدا کړے او تر کومه چې ما هغه کسانو له پخپله سزا نهٔ وي ورکړې چې چا په انګريزي سفير باندې حمله کړې ده نو رابرټس هغهٔ ته غوټ پريکړې ووئيل چې په کابل باندې د پيش قدمۍ کولو احکام زما دپاره بالکل ناطق دي او په دې وجه زهٔ په هيڅ شان خپله فوځ کشي ملتوي کولے نشم. هر څومره چې به امير يعقوب خان رابرټس ته د فوځي پيش قدمۍ برخلاف دلائل پيش کول هغه هومره به رابرټس دا خيال کولو چې يعقوب خان د انګريزي فوځونو د مقابلې کولو دپاره خپل تجويزونه مکمل کول غواړي او د دوستۍ په جامه کښې فيرنګيانو سره دشمني کوي. سره د دې بې اعتبارۍ او بدګمانۍ رابرټس هغه د خپل زړهٔ د خيالاتو نه بالکل نا اګاه وساتلو او د هغهٔ د استوګنې دپاره ئې د خپل کيمپ په منځکښې خيمه ولګوله. او څومره چې ممکن کيدے شوه هغه هومره ئې د ميلمستيا دپاره پوره انتظام وکړو. څو ورځې پس چې د يعقوب خان خپلې خيمې راورسيدې نو هغهٔ د رابرټس نه د انګريزي کيمپ نه د بهر وسيدو اجازت وغوښتو. رابرټس د يعقوب خان دا خبره منظوره کړله ليکن يو ښهٔ مضبوط فوځي ګاډ ئې په ظاهره خو د هغهٔ د عزت او د حفاظت دپاره ولې په حقيقت کښې د هغهٔ په نقل و حرکت باندې د مخبرۍ دپاره په هغهٔ مقرر کړو.

چونکې امير يعقوب خان رابرټس سره د ملاقات په دوران کښې دا خبره هم کړې وه چې په کابل باندې د فوځي قبضې په کولو کښې د پرامن ابادۍ د تباه کيدو سخته خطره ده په دې وجه رابرټس دا اعلان د کابل د خلقو په نوم شائع کړو.

" ټولو خلقو ته دې دا خبره ښکاره وي چې يو انګريزي فوځ په کابل باندې د دې غرض دپاره راروان دے چې هغوي په ښار باندې قبضه وکړي کهٔ چرې هغه فوځ چا په رضا صلاح قبضې کولو ته پريښودو نو ډيره ښه ګنې نو بيا به مونږ په ښار باندې په زور قبضه کوؤ. د دې دپاره زهٔ هغه ټول خيرخواه خلق چا چې د انګريزي سفير په بزدلانه قتل کښې حصه نهٔ ده اخستې يا د سفارت په تالا کولو کښې شريک نهٔ وو خبروم چې کهٔ چرې هغوي دا نشي کولے چې هغوي نور خلق د انګريزي فوځ د مقابلې نه يا د هز هائي نس امير د اختياراتو د مقابلې نه منع کړي نو پکار دي چې هغوي پخپله سمدستي د خپل حفاظت دپاره بندوبست

وکړي. او یا خو انګریزي کیمپ ته راشي او یا دې څۀ نور څۀ داسې ذریعه اختیار کړي چې هغوي ته مناسب ښکاري. او چونکې حکومت برطانیه ښځو او بچو سره جنګ نۀ کوي د دې دپاره ټولو خلقو ته خبر ورکیدے شي چې تمامې ښځې او بچي دې د ښار نه وویستې شي چې د نقصان د زد نه بهر وي. حکومت برطانیه غواړي چې هر قسم خلقو سره د انصاف سلوک وکړي او د هغوي د مذهب د احساساتو او د رواجونو عزت وکړي ولې مجرمانو له پوره پوره سزا ورکړي. په دې سبب مونږ به هر قسم کوشش د دې خبرې کوؤ چې ګناه ګارو سره بې ګناه سزا ونۀ خوري ولې دا ضروري ده چې خلق دې هم د دې خبرې ډیر لوے احتیاط وکړي چې زمونږ د فوځونو بې فائدې مقابله ونشي.

د دې اعلان د رسیدو نه پس هر څوک چې په کابل کښې یا د کابل په خواوشا کښې مسلح بیاموندې شو هغۀ سره به د حکومت برطانیه د دشمن سلوک کیدے شي. او د دې نه علاوه خلق دې په دې خبره ځان ښۀ پوهه کړي چې کۀ چرې د انګریزي فوځونو د داخلې چا مقابله وکړه نو زۀ به د هغې اتفاقي نقصان ذمه وار نۀ یم کوم چې زمونږ د خیرخواه خلقو مال یا ځان ته پیښ شي او چا چې په دې انتباه باندې د عمل کولو نه غفلت کړے وي."

هر کله چې د فوځ دپاره سامان څۀ لږ ډیر مکمل شو نو رابرټس د رسالې ټول بریګیډ ته حکم وکړو چې هغوي دې په دیرشم ستمبر زرغون شهر ته چې د کوشي نه اتۀ میله لرې پراؤ دے روان شي. رابرټس پخپله هم دې بریګیډ سره روان شو. څکه چې ولي محمد خان او نور سرداران چې امیر یعقوب خان نه برخلاف ډله کښې شامل وو هم زرغون شهر ته په انګریزي کیمپ کښې د شاملیدو دپاره رارسیدلي وو. او رابرټس دا نۀ غوښتل چې یعقوب خان او دا سرداران دې ټول یو ځاے شي. دغه حالت وۀ د پښتنو سردارانو د اتفاق او د هغوي خپل ملک او قام سره د محبت. سره د دې چې د بیروني او غیر قوم یو زبردست فوځ د ټول افغانستان په سینه ډکه تماچه ایښې وه پکار وو چې د داسې مصیبت په وخت کښې د قام ټولو مشرانو خپلې کورنې وراني خفګانونه او باهمي بغض او حسد یو طرف ته ایښې وے او د مشترک دشمن په مقابله کښې د یو لاس ګوتې شوے وے نو د دې په ځاے دې سردارانو د دې موقعې نه د ذاتي سود د حاصلولو دپاره د ملک او قام دشمنانو سره منصوبې او سازشونه شروع کړل. او د یو بل د پښو په راښکلو ئې ګوتې پورې کړې. رابرټس په خپل کتاب کښې د دې غدارانو د رویې په حقله دا شان لیکي :

"Most of them remained with me all the time I was in Kabul, and some of them afforded me considerable assistance. The sadars warned me to place no trust in the Amir, and enlarged on the treachery of his conduct, but as I knew they looked upon Yaqub Khan as their own deadly enemy, I accepted their councel with some reservation."

ترجمه : " په دوئ کښې اکثر کسان چې ټوله موده چې زۀ په کابل کښې وم، ما سره ډيره وو او پـه هـغـوي کښې څنې کسانو ماله ډير لوے امداد راکړو. دې سردارانو زۀ خبردار کړم چې په امير هيڅ اعتبار ونۀ کړې. او د هغۀ د فريب په رويه ئ ماته ورړدې ورړدې خبرې وکړې مګر چونکې ماته معلومه وه چې هغوي يعقوب خان خپل سخت دشمن ګڼي په دې وجه ما د هغوي مشوره په احتياط سره ومنله."

رابـرټـس پـه زرغـون شهـر کښـې ولي محمد خان او د هغۀ ملګري سردارانو او درۀ لـوګـر نـورو ملکانو سره د جرګې کولو نه پس بيا هم په هغه ماښام واپس کوشي ته راغلو. په اول اکتوبـر رابـرټـس خپـل ټول فوځ د لوګر په دره کښې راجمع کړو په دې فوځ کښې يو سـل دوه نـوي بـرټش افسران، دوه زره پنځۀ سوه او اتۀ پنځوس ګوره او درې زره اتۀ سوه او شپيتۀ هندوستانيان وو. دې فوځ په دريم تاريخ د کابل په طرف کوچ شروع کړو. او وړومبے پـړاؤ ئ پـه زاهـد ابـاد کښـې وکـړو. په لاره د غازيانو بې قاعدې ټولګو په دې فوځ څۀ ډزې وکـړې او کپتان ډک کينيډي يو برټش افسر ئ ژوبل کړو. په شترګردن کښې هم غازيانو د دې نـه وړومبے يـوه ښـه مـضـبـوطـه حمله په هغه انګريزي محافظې دستې باندې کړې وه چې کـومـه رابرټس د هغه ځاے د حفاظت دپاره پريښې وه او ميجر ګريفيډ يو ګوره سارجنټ او پنځۀ سکهان ئ زخمي کړل.

پـه انګريزي کيمپ کښې د يعقوب خان دا حال وۀ چې رابرټس د هغۀ نه ګير چاپيره پـه دې غـرض مـخبـران لـګـولـي وو چـې د امير د ټولې روېې او د هغۀ سره د مختلف خلقو د آمـدورفـت پـوره پـوره مـخبـري هـغۀ ته ورکوي. د کابل د خلقو د تګ راتګ او د هغوي د خـطـونـو د راوړو نـه رابرټس ته په دې خبره يقين وشو چې د امير يعقوب خان دا قاصدان ډير اهـم خبـرونـه راوړي په انګريزي کيمپ کښې د يعقوب خان په موجودګۍ کښې رابرټس په دې وجه هم تنګ وۀ چې د هغۀ دا شک وۀ چې يعقوب خان ته په دې ځاے کښې د انګريزانو د فوځي طاقت او د هغوي د مخکښې ارادو پوره پته لګيدے شي.

پـه پـنـځـم اکتوبر رابرټس د چار آسيا کلي ته ورسيدو دا کلے ډير ښکلے د باغونو نه ډک او پـه نـهـرونـو او ولـو باندې پُر وۀ چارچاپيره ترينه خوبصورت خوبصورت غرونه او د سـنـګ نـوشـتـه آبدره ده. چې د لوګر سيند پکښې تير شوے دے او د کابل نه تقريباً په دولس ديـارلـس ميـلـه فـاصـلـه پروت دے. په دې ځاے کښې جنرل سردار نيک محمد خان چې د يعقوب خان ترۀ کيدو يعقوب خان له د ملاقات دپاره راغلو او تر څۀ وخته پورې ئ هغۀ سره جـرګـې وکـړې. رابرټس په خپل کتاب کښې وائي چې څۀ وخت نيک محمد خان زمونږ د کيمپ نه په واپسۍ کښې په وتو شو نو هغۀ مونږ ته د اورولو دپاره په لوړ وچت اواز يعقوب خـان تـه ووئيل چې دا دے زۀ اوس ځم او فوځونه خوارۀ وارۀ کوم. هغه مخکښې وائي چې هم

په دغه ورځ د کمناري يو نوکر هم د کابل نه په تيښته انګريزي کيمپ ته راورسيدو او خبر ئ راوړوچې د انګريزي فوځ د مقابلې دپاره زبردستې تيارئ په کابل کښې رواني دي او سپاهيان او د اولس خلق د سرکاري اسلحه خانې نه ځان له کارتوسونه وغيره اخلي او ډير فوځونه د جنګ دپاره انګريزي کيمپ طرف ته راروان دي. رابرټس وائي چې هرکله ما يعقوب خان ته د دې خبرې ذکر وکړو نو هغهٔ دا بهانه وکړه چې زما په دې بالکل باور نهٔ کيږي او ماته ئ تسلي راکړه چې د کابل په ښار کښې بالکل امن دے او نيک محمد خان به فوځونه بالکل په قابو کښې وساتي او هيڅ قسم تکليف به تاسو ته نهٔ رسي مګر زهٔ د يعقوب خان په دې تسلو ونهٔ غوليدم.

رابرټس ته د باربردارئ د څاروو د کمي تکليف بدستور وهٔ او له دې کبله به قريباً د هغهٔ نيم فوځ په ټوله لاره هميشه وروستو وهٔ په دغه ورځ هم د ميکفرسن ټول بريګيډ وروستو پاتې شوے وهٔ ولې څهٔ وخت چې رابرټس چار آسيا ته ورسيدو نو هغهٔ سمدستي خپل ټول څاروي د ميکفرسن د فوځ د راوستو دپاره واپس وليږل ځکه چې هغهٔ په چارچاپيره غرونو باندې د غازيانو لوے لوے ټولي وليدل او هغهٔ سمدستي دا اراده وکړه چې په دې غرونو باندې قبضه وکړم. د دې غرونو نه په قطب په بله دره کښې د فيرنګيانو نه پناه د کابل ښار چار ديهه، ديهه افغان او نور ډير کلي پراتهٔ دي له دې کبله رابرټس دا خيال وکړو چې کهٔ چرې زهٔ سمدستي په دې غرونو باندې قبضه وکړم نو د کابل ښار او د هغې ګير چاپيره علاقه به زما د فوځ او د توپو د زد لاندې شي او په ښار باندې په پيش قدمي کولو کښې به هيڅ تکليف پيښ نشي. ولې کهٔ چرې هغهٔ د ميکفرسن د فوځ د رارسيدو انتظار کولے نو د هغهٔ په زړهٔ کښې ويره وه چې غازيان به په ډير لوے جمعيت کښې راغونډ شي او د هغهٔ په لاره کښې به بيشانه نور ډير مشکلات پيښ شي. په دې وجه هغهٔ په شپږم اکتوبر د باقي فوځ د نور انتظار نه بغير په پښتنو غازيانو باندې د حملې فيصله وکړه او سمدستي ئ جنرل بيکر ته حکم وکړو چې هغه د غازيانو په ښي طرف چپاؤ وکړي او د غرهٔ دا حصه د هغوي نه صفا کړي. دا د دې ورځې د حملې اصلي حصه وه. رابرټس پخپله د سنګ نوشته په لوري چې د غازيانو په ګس طرف پرته وه صرف په دې غرض پيش قدمي شروع کړه چې هغه د بيکر د اصلي حملې نه د غازيانو توجه واړوي. دې کارروايئ سره سم د قام خلقو د ميکفرسن وروستو پاتې شوي فوځ باندې هم حمله وکړه. هغهٔ له رابرټس د رسالې يوه حصه د امداد دپاره وليږله او خبر ئ ورته وکړو چې زهٔ د چار آسيا په غرونو سمدستي حمله کوم او تهٔ څومره زر چې کيدے شي نو ځان دې کلي ته راورسوه. د رابرټس د تجويز مطابق بيکر او هغهٔ پخپله په غازيانو باندې سخته حمله وکړه او د دواړو لښکرو په منځکښې سخته جګړه وشوه. جنګ د نمر خاتهٔ نه تر مازيګر نمر پريوتو پورې په ډير شدت وشو او اګرچې غازيانو

پـه ډیرې ځوانمردی او نرتوب مقابله وکړه ولې منظم او په وسله پُور انګریزي فوځ ته ټینګ نشـو او بالاخر مات شو او شکست ئ وخوړو. د دې ټول جنګ په دوران کښې امیر یعقوب خـان د یوې غونډۍ په سر ناست د جګړې تماشه ئ کوله ولې کوم خیال چې رابرټس د هغهٔ په حقله په زړهٔ کښې لرلو هغه د رابرټس د لاندینو الفاظو نه واضحه کیږي :

" زما دوست امیـر پـه دغـه ورځ ټول وخت د خپلو سردارانو په منځکښې زمونږ د کیـمپ پـه مـرکـز کښـې پـه یـوه غونډۍ باندې ناست وهٔ او په ډیر لوړے اشتیاق ئ د جنګ د رفتـار تماشه کوله او څوک چې به راښکاره شو نو د هغهٔ نه به ئ تپوس کولو چې تا څهٔ ولیدل او د هـغې نه څهٔ نتیجه وباسې. خو چې څهٔ وخت ماته د خپلې فتحې پوره پوره یقین وشو نو ما سـمـدستي خپـل یو ایډي کانګ هز هائي نس ته د خپلې کامیابۍ د خوشخبرۍ اوررولو دپاره واستـولـو. دې کښـې هیـڅ شک نشته چې دا د هغهٔ دپاره د یو لوړے ازمائش وخت وهٔ او کوم تـجـاویـز چې (بـعـده زما د تحقیق نه پته ولګیده) هغهٔ او په کابل کښې د هغهٔ ملګرو زمونږ د تبـاهـۍ دپـاره پـه ډیر فکر سره تیار کړي وو نو د هغې په مقابله کښې د جنګ دا نتیجه د هغهٔ دپـاره سـخته د مایوسۍ وه. ولې هغهٔ دا خبر په هغې اطمینان واوریدو چې کوم د ایشیا د خلقو خـصـوصیت دے او هیڅ د خفګان آثار ئ ظاهر نهٔ کړل او زما اے ډي سي ته ئ صرف دومره خبـره وکـړه چې تـهٔ رابـرټـس تـه د دې خبرې اطمینان ورکړه چې "چونکې ستا دشمنان زما دشمنان دي په دې وجه زهٔ ستا په دې فتح ډیر خوشحاله یم."

د میـکـفـرسـن بریګیډ د جنګ ختمیدو نه پس لا تیارهٔ نهٔ وه چې راورسیدو مګر دغه وخـت رابرټس ته خبر راغلو چې د غلجو غازیانو لویو لویو ټولو په شترګردن باندې د دوباره حـمـلـې کـولـو دپاره تیارۍ کړي دي. او د غزني نه باقاعده فوځونه او توپې انګریزانو سره د جنګ دپاره راروان دي. سره د دې چې انګریزي فوځ د ټولې ورځې د جنګ نه پس سخت ستړے او ستـومـانـه وهٔ ولـې رابرټس په دې خیال چې هرڅومره زهٔ ایساریږم او ډیل کوم هغه هـومره د غازیانو طاقت او د قومي خلقو جمعیت زیاتیږي نو هغهٔ فوځ ته حکم وکړو چې سبا له پـه کـابـل بـانـدې د پیـش قـدمـۍ دپـاره بـالکل تیار اوسئ . په اووم تاریخ سحر وختي بغیر د میـکـفرسن د بریګیډ نه د کابل په طرف روان شو . د میکفرسن بریګیډ ته د دروند سامان لکه ګـولـه بـارود، کارتوسونه او د خوردونوش د سامان د راوړلو کار حواله شو. او هغهٔ ته هدایت وشو چې هغه دې ډیر زر څان باقي فوځ پسې راورسوي.

هـر کـلـه چې رابرټس د بني حصار کلي ته راورسیدو نو هغهٔ د رسالې ګشتي دستې د غـازیانو د نقل و حرکت د معلومولو دپاره د ځان نه وړاندې خورې کړې. بني حصار د کابل د بـالاحصار نه صرف دوه میله لرې دے. دې ګشتي دستو رابرټس ته خبر راوړو چې بالاحصار تـش توږ پروت دے او د کابل ښار کومه حصه چې هغوي ته ښکاریده د هغې نه خلق تبنیدلي

دي. په دغه ورځ د کابل ښار ځني لوے لوے سوداګران رابرټس ته د ملاقات دپاره راغلل او هغوي سره د خبرو اترو کولو نه پس رابرټس ته دا پته ولګيده چې د کوهستان نه تازه دم فوځونه رارسيدلي دي او د چار آسيا د جنګ نه چې کوم غازيان راغلي دي نو هغوي هم دې فوځ سره ملګري شوي دي او دې ټولو د کابل نه د قبلې د طرف غونډو باندې مضبوطې مورچې نيولي دي. رابرټس ته دا خبره هم معلومه شوه چې کۀ چرې د غازيانو دې ټولي په جنګ کښې شکست وخوړو نو بيا د هغوي اراده ترکستان ته د تښتيدو ده. په دې وجه رابرټس په دې ټولي باندې د حملې کولو نه ورومبے بريګيډير جنرل ميسي ته حکم وکړو چې هغه دې په اتم اکتوبر د رسالې خپل بريګيډ سره غازيانو ته د تيښتې لار ونيسي. دا بريګيډ په يولس بجې سحر روان شو او د يو ورد چکر وهلو نه پس د سياه سنګ او شير پور چاونړۍ په خوا کښې تير شو هر کله چې ميسيّ شير پورّ ته راورسيدو نو هغۀ په شيشه کښې رابرټس ته خبر ورکړو چې د شيرپور ټوله چاونړۍ خالي پرته ده ميخزين ئ الوځولے شوے دے او په چار ديوارۍ کښې دننه پنځۀ اويا توپې خوشے پرتې دي او د غازيانو ټولي د اسمائے په غونډو پراتۀ دي د شير پور نه ميسي د نانچي کوتل په لاره د اسمائے غونډو نه په قبله راتاؤ شو او د غازيانو کيمپ ئ ديهه مزنګ نه يو ميل بيرته د نورو غونډو په خوا کښې وليدو. رابرټس د ميسي په جواب کښې هغۀ ته خبر ورکړو چې زۀ بيکرّ درليږم چې هغه غازيان د خپلو موجوده مورچو نه وباسي او مجبور ئ کړي چې هغوي ستا په رسالې درشي. د دې تجويز په سلسله کښې ميسي خپل ټول انتظام مکمل کړو او د بيکرّ د حملې په انتظار کښې تيار کښيناستو. بيکر د رابرټس د حکم مطابق يو زر شلور شلويښت ځوانان او درې توپې د ځان سره واخستې او سمدستي روان شو ليکن کومه لار چې هغۀ واخسته هغه غلطه وه ځکه چې د هغۀ او د غازيانو ترمنځ د کابل د سيند آبدره راغله. او چونکې د هغې نه تيريدل نامکن وو په دې وجه هغۀ په غازيانو حمله ونکړې شوه. د لارې د غلطيدو په سبب په هغۀ شپه راغله او اګر چې هغۀ په دې غازيانو باندې د حملې کولو په کوشش کښې څۀ کمے ونکړو ولې څۀ وخت چې غازيان پرې پوهه شول چې جنرل ميسي او بيکر دواړه زمونږ د کيمپ د راګيرولو کوشش کوي نو هغوي د دواړو په بې خبرۍ کښې د شپې په تيارۀ کښې خفيه طور يو خوا بل خوا خوارۀ شول او بيکر په خپل مقصد کښې بالکل ناکامياب شو. په دې ناکامۍ رابرټس ميسي او بيکر درې واړو ته ډيره مايوسي وشوه او رابرټس په دې ټوله لار په دې غرض وګرځيدو چې د بيکر نه خو څۀ غلطي يا سستي شوې نۀ وه. مګر د پوره تحقيق نه پس رابرټس په دې نتيجه ورسيدو چې بيکر د خپل وس مطابق غازيانو سره د مقابلې پوره کوشش کړے دے خو واقعات د هغۀ مخې له داسې قسم راغلل چې نوره پيش قدمي د هغۀ دپاره نامکن وه. د غازيانو په کيمپ کښې دولس توپې څۀ هاتيان، اوښان، قچرې او تمبوان د

فیرنگیانو په لاس راغلل. هم دغه ورځ رابرټس خپل کیمپ د کابل ښار ته نور هم رانږدې د سیاه سنگ په غونډۍ چې د کابل او د لوګر د سیندونو په منځکښې پرته وه ولګولو او دغه شان د کابل ټول ښار د انګریزي فوځ په ښنو کښې د فیرنګیانو په رحم پروت وۀ. اوس د رابرټس په مخکښې د کابل ابادۍ له بالخصوص د افغانستان ټولو ښتنو له بالعموم د سزا ورکولو سوال درپیش شو.

## دویشتم باب

د حکومت هند د طرف نه ښتنو ته د سزا ورکولو او مختلفو امورو سر ته د رسولو دپاره رابرټس ته هدایات ورکول، په بالاحصار کښې د رابرټس یو اهم اعلان کول، د امیر یعقوب خان خاص خاص مشیران ګرفتارول، مجرمانو ته د سزا ورکولو دپاره د یو عدالت قائمیدل، او ښتنو ته قسم قسم سزاګانې ورکیدل، په دې خبره د انګلستان په پارلیمنټ کښې د ځنې ممبرانو ناراضه کیدل، او د رابرټس په مرسته د وائسرائے هند د صفایی کوشش کول، د رابرټس یو بل اعلان کول او اکثرو خلقو ته معافي ورکول، او په اخر کښې د امیر یعقوب خان ګرفتاریدل او هندوستان ته په حراست کښې لیږل.

کوم هدایات چې حکومت هند رابرټس ته د انګریزي سفیر د قتل په بدل کښې د سزا ورکولو په سلسله کښې ورکړې وو هغه عام او ډیر معین وو. د وائسرائے دا خیال وۀ چې انګریزي جنرل دې د افغانستان د هغې وخت د صورت حال مطابق او د امیر او د عام خلقو د رویې په لحاظ خپله کارروائي وکړي مګر بیا هم هغۀ په خپل خط کښې د رابرټس د رهنمایۍ دپاره غټې غټې سرخی د هغۀ د عمل دپاره قائمې کړې وے. د دې هدایاتو خلاصه دا ده چې " رابرټس دې خپل فوځونه په داسې محفوظ او مضبوط مقاماتو باندې ډیره کړي چې هغۀ ته د امیر په صدر مقام باندې پوره پوره قابو او تسلط حاصل شي کۀ چرې ځنې افغان فوځونه لا په کابل کښې موجود وي نو هغوي او د کابل د ټولې ابادۍ نه دې تمامه وسله واخستې شي سامان رسد دې په دومره مقدار کښې جمع کړې شي چې کۀ چرې د آمدورفت لاره بنده هم شي نو چې فوځ ته په دې باره کښې د هیڅ څیز حاجت پاتې نشي. د یعقوب خان د ذات حفاظت پکار دے. مګر د هغۀ په نقل و حرکت باندې دې پوره نګراني وساتلې شي. د هغې اسبابو او واقعاتو باره کښې دې پوره پوره تحقیقات وشي چې دکوم په سبب د امیر د فوځ او د هغۀ د صدر مقام د خلقو بې وجې او په سختی وحشیانه طریقې د یو دوست حکومت په نمائنده باندې حمله وکړه حالانکې دا نمائنده د امیر په حفاظت کښې او د هغۀ په قلا کښې او د امیر د خپل ځاے په خوا کښې ځخت وسیدو. او د هغۀ د ذات د حفاظت او د ښۀ

سلوک ذمه واري د افغانستان بادشاه په خپل سر اخستي وه. د سزا په باره کښې دا هدايات وو چې دا دې د جرم د نوعيت په لحاظ په دوه شانه ورکړې شي. يو خو تر کومه حده پورې چې ټول قوم په دې جرم کښې گناه گار وي نو هغه هومره سزا دې پښتون قوم ته ورکړې شي او بل دې د قوم هغه حصې له جدا سزا ورکړې شي چې په چا باندې د دې فعل خاصه ذمه واري ثابته شي. د دې نه علاوه وائسرائے دا هم ليکلي وو چې د کابل په ښار باندېمجموعي جرمانه لگول به د انصاف او د دستور نه خلاف نۀ وي او دا کار به هم د فوځي احتياط په لحاظ ضروري وي. کۀ چرې هغه ټول برجونه او مکانات وغورځولې شي کوم چې د انگريزي فوځ د تحفظاتو يا په ښار باندې د هغوي د پوره قابو ساتلو په لاره کښې د رکاوټ باعث وي رابرټس ته د دې خبرې د خيال ساتلو هم هدايات وو چې د ښار دا استحکامات او عمارتونه دې د يو داسې تجويز مطابق وران کړې شي چې هغه د انصاف او د انسانيت د اصولو نه خو خلاف نۀ وي ولې بيا هم چې د هغې په ذريعه د.سزا يوه دا شان مستقل يادگار په کابل کښې پاتې شي چې په اسانه هغه د هيريدو قابل نۀ وي. د افرادو د سزا متعلق هغۀ ته دا هدايات وو چې دا دې په تيزۍ په سختۍ په مؤثره طريقه ورکړې شي ليکن بې امتيازه او د حد اعتدال نه دې زياتې نۀ وي. د دې سزا د ورکولو کار دې هغې ماتحت افسرانو ته نشي پريښودې چې هغوي د معمولي ذمه وارۍ خاوندان وي او نۀ دې د رابرټس د نگرانۍ او هداياتو نه بغير دې ماتحت افسرانو ته د څۀ کار کولو اختيار وي. رابرټس ته حکم وۀ چې د فوځ د ضبط بيشانه ډير فکر ساته. او تر کومه پورې چې ستا د احکامو تعميل پوره پوره کوي او ستا د اختياراتو مقابله نۀ کوي نو تر هغې پورې غير مسلح ابادۍ سره د خپل فوځ د عام سلوک سخته نگراني پکار ده. ستا د تفتيش نه چې د کومو خلقو برخلاف د سفارت د کسانو په قتل کښې د شريک کيدو الزام ثابت شو نو په هغوي کښې د اکثرو ملزمانو د مقدمې سماعت سرسري کوه او اگر چې سزا څومره چې ممکن کيدے شي نو په عامو خلقو کښې او په مؤثره طريقه ورکول پکار دي. دا هم ضروري ده چې هغه دې په ډيرې تيزۍ سره ورکړې شي څکه چې کارروائي هرڅومره چې وړ.ديږي هغه هومره به د خوف او هراس بې بنياد خبرونه بهر خوريږي. په اخر کښې رابرټس ته دا هم ليکلي شوي وو چې نۀ صرف ستا د کيمپ د حفاظت بلکې زمونږ د طرفدار خلقو د حفاظت دپاره هم د عام انتظام د قيام په خاطر دا ضروري معلوميږي چې د هر قسم اختيارات تۀ په کابل کښې په خپل لاس کښې واخلې څکه چې د بدنصيبي نه واقعاتو دا ثابته کړې ده چې لا خو د امير د لاس نه دا اختيارات بالکل وتي دي او لا هغه د هغې په استعمالولو کښې سخت ناکامياب شوے دے.

دا هدايات په نهۀ ويشتم ستمبر د وائسرائے د محکمۀ خارجه نه د رابرټس په نوم جاري شوي وو او اوس چې کابل د فيرنگيانو لاس ته راغے نو په هغې باندې د عمل کولو

سوال درپیش شو. په لسم اکتوبر رابرټس د چاوڼۍ ملاحظه وکړه او په بله ورځ هغه بالاحصار ته لاړو په بالاحصار کښې هغهٔ په ټولو ځایونو وگرځیدو په کوم کښې چې په انگریزي سفارت حمله شوې وه. په بالاحصار کښې پنځهٔ اتیا توپې دوه نیم سوه ټنه بارود، کروړونه کارتوسونه او نوره ډیره وسله، زینونه او د فوځ وردی، چړې، گولۍ پټاخې بیحده ډیرې د سکې تانبې او د ټین ذخیرې پرتې وے.

رابرټس په دولسم تاریخ ټول کابل ښار له د سزا ورکولو د اعلان د لوستو دپاره مقرر کړو او حکم ئې وکړو چې د ښار تمام لوے سرې دې په بالاحصار کښې د دې اعلان د اوریدو دپاره راجمع شي. د دې نه علاوه هغهٔ د خپل ټول فوځ په نوم حکم جاري کړو چې هغوي به بالاحصار ته په دولسم تاریخ د جلوس په شکل کښې د جنرل رابرټس په همراهیت کښې ځي. د دې دپاره چې د دې ټولې کارروایۍ یو هیبت په خلقو پریوځي. رابرټس هم په دغه ورځ د یعقوب خان د سخر سردار یحییٰ خان او د هغهٔ وړور سردار ذکریا خان د مستوفي حبیب الله خان او د وزیر محمد شاه خان د گرفتارۍ فیصله وکړه. حالانکې نهٔ خو د هغوي خلاف څهٔ مجرمیت ثابت شوے وهٔ او نهٔ د هغوي برخلاف څهٔ تحقیقات شوي وو. دا گرفتارۍ ئې هغه وخت په دې خیال وکړې چې دا د یعقوب خان لوے لوے مشیران دي او د هغوي رسوخ اواثر د حکومت برطانیه برخلاف استعمالیږي. کمانډر انچیف داؤد شاه هم اگرچې د امیر صاحب اعتباري مشیر وهٔ لیکن رابرټس هغهٔ ته په دې وجه لاس وانهٔ چولو چې یو خو هغهٔ د سفارت د بچاؤ دپاره څهٔ کوشش کړے وهٔ. اگرچې د رابرټس په خیال کښې هغه کوشش څهٔ ډیر معمولي وهٔ او بل دا چې د کوم وخت نه هغه انگریزي کیمپ ته راغلے وهٔ نو هغهٔ په ډیرو موقعو فیرنگیانو ته د هغوي د مطلب خبرونه ورکړي وو. او په دې وجه د رابرټس دا طمع وه چې زهٔ به د هغهٔ نه د مخکښې دپاره هم ډیر کار اخلم.

هرکله چې رابرټس د کابل پوره مالک شو او په ظاهره د مخالفت او د مقابلې هیڅ آثار په نظر نهٔ راتلل نو د هغهٔ په مخکښې امیر یعقوب خان سره د ظاهرداری د رویې د پریښودلو او هغهٔ سره ښکاره په ښکاره د تعلقاتو پریکولو سوال پیش شو. لارډ لیټن هغه وړومبے متنبه کړے وهٔ چې قبل از وقت یعقوب خان سره ورانول پکار نهٔ دي ځکه چې ممکن ده چې هغه د انگریزانو په لاس کښې مفید آلهٔ کار ثابت شي. ولې څهٔ وخت چې رابرټس د هغهٔ د لویو لویو وزیرانو د گرفتارۍ فیصله وکړه نو د هغهٔ په زړهٔ کښې دا شک پیدا شو چې اوس به یعقوب پخپله فیرنگیانو سره ورانه کړي. د رابرټس پخپله خو یعقوب خان ډیر ناخوښه وهٔ. د هغهٔ د وړومبے نه دا خیال وهٔ چې اگرچې د یعقوب برخلاف د سفارت د قتل په سازش کښې د شریک کیدو ثبوت نشته ولې دا یقیني خبره ده چې هغه د هغوي د بچاؤ دپاره هم قطعاً هیڅ کوشش نهٔ دے کړے. او د هغوي د قتل په ورځ هغهٔ د خپلې بزدلۍ پوره ثبوت

ورکړے دے. د هغهٔ برخلاف د رابرټس دا شک هم وۀ چې هغهٔ انتهائي کوشش د دې خبرې کړے دے چې انګریزي فوځ دې په کابل باندې خپله پیش قدمي ملتوي کړي. او په دې طریقه هغهٔ ته د فیرنګیانو برخلاف د پښتنو د منظم کولو او راوچتولو موقع په لاس ورشي. په دې وجوهاتو د رابرټس دا رائ وه چې یعقوب خان هرګز د دې مستحق نهٔ دے چې هغهٔ سره دې د یو معزز ملګري او اتحادي سلوک وشي. یا خو هغه ورځ وه چې رابرټس ته لا د کابل اخستو مهم په مخکښې پروت وۀ او هغهٔ سره د ټول افغان قوم د راپاڅیدو خطره وه او د ځنې مشکلاتو په سبب هغهٔ ته دا یقیني علم نهٔ وۀ چې هغه به د کابل په اخستو کښې ارومرو کامیابیږي. نو هغه وخت هغهٔ په خپل وړومبي اعلان کښې پښتنو ته د خپل فوځ د پیش قدمی دوه مقصده وښودل. یو دا چې د انګریزي سفارت قاتلانو له سزا ورکړې شي. د دې قسم اعلان ویستل هغهٔ د دې دپاره ضروري ګنلي وو چې پښتانهٔ دا خیال وکړي چې فیرنګیان خو صرف د امیر یعقوب خان د باغي سپاهیانو د سزا ورکولو دپاره راغلي دي نو چې د دې کبله هغوي د انګریزانو برخلاف راوچت نهٔ شي او یا اوس د یوولسم اکتوبر 1879ء ورځ وه چې رابرټس بغیر د څهٔ قابل ذکر مقابلې نه په کابل پوره تسلط او قابو بیاموندو نو د ټولو نه وړومبے د هغهٔ سترګې امیر یعقوب خان او د هغهٔ وزیرانو ته خرې شوې او هغه په دې فکر کښې لګیا شو چې امیر یعقوب خان سره به په کومه بهانه تعلقات پرې کړم او هندوستان ته ئ جلاوطن کړم.

رابرټس لا په دې شش و پنج کښې پروت وۀ چې امیر پخپله په دولسم اکتوبر سحر وختي د رابرټس خیمې ته راغلو او هغهٔ ته ئ ووئیل چې زهٔ د افغانستان د حکومت نه دست بردار کیږم. معلومیږي چې رابرټس د امیر دې قدم ته لا تیار نهٔ وۀ او د هغهٔ دا اراده وه چې د یعقوب خان نه لا څهٔ نور کار هم واخلم. په دې سبب یعقوب خان ته هغهٔ منت وکړو چې تهٔ داسې سمدستي د دې خبرې فیصله مهٔ کوه بلکې د څهٔ وخت دپاره په دې نور هم ښهٔ غور وکړه او ترلسو بجو پورې ما سره بیا وګوره. په دې ځاے کښې د دې خبرې ذکر کول ضروري معلومیږي چې په یوولسم تاریخ رابرټس یعقوب خان ته دا وئیلي وو چې په دولسم تاریخ به تهٔ هم ما سره بالاحصار ته د سزا د اعلان د اوریدو دپاره په لس بجې ملګرے ځے. دې کښې هیڅ شک نشته چې دا د یعقوب خان دپاره د حد درجې سپکاوے، ذلت او د هغهٔ شاهي وقار د تباهي باعث وۀ چې عین د هغهٔ په صدر مقام کښې دې د یو غیر قوم یو فوځي افسر د هغهٔ روبرو د هغهٔ رعیت له سزا ورکړي. او هغه دې خاموش بیوسه او لاچار ناست وي. په دې طریقه رابرټس د هغهٔ د حکومت بنیادونه ډ مضبوطولو په ځاے نړول غوښتل او یعقوب خان په دې ډیر په ښهٔ شان سره پوهه شو چې رابرټس د ظاهرداری لار ما سره پریښوده او د حبل رعایا په مخکښې ما شرمول غواړي. په داسې جلسه کښې د هغهٔ دپاره

کښېناستل نه صرف هغه په خپل قوم او رعایا کښې بې عزته کول وو بلکې د کابل په عام خلقو کښې دا خیال پیدا کول وو چې دا ټول زور زیاتے هغوي سره فیرنګیان زمونږ د خپل بادشاه او مشر په مشوره کوي. په داسې واقعاتو کښې د یعقوب خان دپاره د خودداری صرف یوه لار وه او هغه دا چې هغه د بادشاهۍ نه لاس په سر کړي. مګر دا هر څۀ د هغۀ د خپلې کمزورۍ او سردارانو سره د بې اتفاقۍ نتیجه وه.

رابرټس اګر چې په خپل کتاب کښې وائي چې دا وخت نۀ خو امیر ته د دولسم تاریخ د اعلان تفصیلات معلوم وو او نۀ هغۀ ته دا پته وه چې زۀ به د هغۀ وزیران ګرفتاروم. د دې وینا نه پس رابرټس غالباً د خپل کتاب د لوستونکو په زړۀ دا اثر غورځول غواړي چې د امیر صاحب استعفیٰ د دولسم اکتوبر د سزا د اعلان په سبب نۀ وه ولې د رابرټس دا وئیل څکه درست نۀ ښکاري چې د امیر نه دا خبره هیچرې پټه نۀ شوه پاتې کیدے چې سبانے اعلان د کابل ښار خلقو له د بې امتیازه سزا ورکولو اعلان دے. چنانچه څۀ وخت چې یعقوب خان بیا په لس بجې رابرټس ته مخامخ شو نو هغۀ ورته ووئیل چې د حکومت نه د دست برداری اراده زما مصمم ده او له دې کبله زۀ د نن ورځې د اعلان په رسم کښې نۀ شم شاملیدے. البته زما مشر زوے موسیٰ خان او زما ټول وزیران به تا سره لاړ شي. رابرټس هغۀ ته بیا منت وکړو چې تۀ پخپله فیصله غور وکړه او د هغې په نتائجو نور هم غور وکړه. ولې څۀ وخت چې هغۀ ته معلومه شوه چې د یعقوب خان اراده پخه او ناقابل ترمیم ده نو هغۀ ته رابرټس ووئیل چې زۀ به ستا د دې فیصلې خبر وائسرائے ته د تار په ذریعه ورکړم او د هغۀ د هدایاتو انتظار به وکړم.

په دولسم تاریخ د غرمې په وخت رابرټس سره د خپل سټاف موسیٰ خان د یعقوب خان مشري زوي او د امیر د وزیرانو او د کابل د لویو لویو سردارانو بالاحصار ته روان شو. د لارې دواړو طرفو ته انګریزي فوځ په قطار کښې ولاړ وۀ او څۀ وخت چې دا ټول جلوس د رابرټس د کمان لاندې د بالاحصار په لویه دروازه ورننوتو نو د افغانستان د قومي جنډې په ځاے انګریزي جنډه وچته کړې شوه. انګریزي باجې د فیرنګیانو قومي ترانه وغږوله او د یو دیرشو توپو سلامي وشوه. دا د امیر یعقوب خان د حکومت بنیادونه مضبوطول وو چې د کوم وعده رابرټس د شپاړسم ستمبر 1879ء په اعلان کښې د پښتون قام سره کړې وه او د هغې نه پس ئې بار بار په خپل تحریر کښې پرله پسې دوباره کړې وه. هر کله چې رابرټس د شاهي دربار لویې کمرې ته ورسیدو، د اس نه کوز شو او په پوړو وروختو نو سمدستي ئې دا اعلان راجمع شوو خلقو ته ولوستو:

"ما په خپل اعلان مورخه دریم اکتوبر کښې د کابل خلقو ته دا اطلاع ورکړې وه چې انګریزي فوځونه د کابل په ښار باندې د قبضې کولو په غرض درروان دي. او ما هغوي

متنبه کړي وو چي هيڅ څوک دې د دې فوځونو د داخلې او د هز هائي نس امير د اختيارا تو مقابلې ته نۀ ودرېږي د دې انتباه هيڅا پروا ونۀ کړه. کوم فوځ چې زما د کمان لاندې وۀ هغه اوس کابل تـه راورسيـدو او په بالاحصار ئ قبضه وکړه. ولې د دې فوځ د پيش قدمی مقابله ښۀ پـه کـلکه وشوه او په دې مقابله کښې د ښار خلقو ښۀ نمايانه حصه واخسته. په دې سبب هغوي د هز هائي نس امير د حکومت نه هم باغيان شول. دا جرم د هغې جرم نه علاوه دے چې کـوم هـغـوي د انـګـريـزي سفير او د هغۀ د ملګرو د قتل په اعانت کړے دے کوم قتل چې يو فـريـبـانـه او بزدلانه جرم دے او په ټول پښتون قام باندې ئ د نۀ هيريدو قابل شرم پورې کړے دے. د دې قسم جـرم پـه سزا کښې کۀ چرې د کابل ښار اوس بالکل تباه کړې شي او د هغې نـوم د دنيا د مخ نه کلي طور سره ورک کړې شي نو دا به يوه جائزه او مناسبه سزا وي. بلې د بـرطانيه عظميٰ حکومت هميش دا غواړي چې انصاف سره دې رحم يو ځاے وي او زۀ اوس د کـابـل خلقو ته دا اعلان کوم چې هغوي له به د هغوي د جرم پوره سزا نۀ شي ورکيدے او ښار بـه سـلامـت پـريـښودې شي. ولې دا هم ضروري ده چې هغوي دې د هر قسم سزا نه بالکل نۀ خـلاصيـږي او دا هـم ضـروري ده چـې کومه سزا هغوي له ورکيدے شي هغه دې دا قسم وي چـې خـلـق د هـغـې احـسـاس وکړي او د مخکښې دپاره د هغوي ياد وي. د دې دپاره د ښار د مـکـاناتو هغه حصه کومه چې دا وخت د بالاحصار په فوځي قبضه کښې رکاوټ پيدا کوي او يـا چـې هغه د انګريزي فوځونو په ارام او په سلامتی کښې مداخلت کوي کوم چې به په هغې کښې ديره کيږي نو هغه حصه به سمدستي زمکې سره هواره کړې شي او د دې نه علاوه به د کـابـل پـه باشنده ګانو يوه لويه جرمانه ايښودې شي چې د هغې رقم به بيا وروستو مقرريږي او دا رقم به د هر يو سړي د حيثيت مطابق د هغۀ نه وصوليدے شي.

د دې نـه عـلاوه زۀ ټـولـو خـلـقـو تـه نوټس ورکوم چې د امن د قيام او د هغې د پوره بندوبست کولو دپاره به د کابل ښار او د هغې نه چارچاپيره علاقه تر لسو ميلو پورې د فوځي قـانـون لانـدې وي. د هـز هـائـي نس امير په منظورۍ به د کابل يو فوځي ګورنر په دې غرض مـقـرريـږي چـې هـغـه ټـولـو ورانکارو خلقو سره عدالت وکړي او هغوي له سختې سزا ګانې ورکـړي. د کـابـل د ښـار خـلـقو او د چارچاپيره کلو وسيدونکو ته د دې اعلان په ذريعه خبر ورکيـدے شـي چې هغوي د هغۀ د احکامو تعميل کوي. دا سزا کومه چې ټول ښار له ورکړې شـوې ده هغه کسان د مزيد سزا نه نۀ خلاصيږي چې د چا انفرادي مجرميت چې د دې نه پس ثـابـت شي. د دې واقعې د ټولو تفصيلاتو متعلق به مکمل او پوره پوره تحقيقات کيږي او هغه ټـولـو کـسـانـو سـره بـه د خپـل خپـل جـرم مطابق سلوک کيږي څوک چې په هغې کښې د شـريـک کـيـدو مـجـرم ثـابت شي. دا د دې غرض دپاره چې د جرائمو او د بدامنی د انسداد پـوره انـتـظـام وشي او په کابل کښې د ټولو خيرخواه خلقو د حفاظت بندوبست وشي. د دې

خبرې اطلاع خلقو له ورکيدے شي چې د مخکښې دپاره به د ښار دننه په کوڅو کښې او د ښار د دروازو نه بهر په پنځۀ ميله کښې دننه دننه د خطرناکې وسلې ګرځول لکه توره، چاړۀ، آتشينه وسله ممنوع وي. کۀ چرې د دې اعلان د تاريخ نه يوه هفته پس څوک په دې حدودو کښې د دې وسلې په ګرځولو باندې بيامونديږ شو نو هغۀ له به د مرګ سزا ورکيدے شي.
کومو کسانو سره چې د انګريزي سفارت څۀ څيز هم په قبضه کښې وي هغوي ته حکم ورکيدے شي چې هغه دې سمدستي انګريزي کيمپ ته راوړي. هر چا چې د دې خبرداری پروا ونۀ کړه او بيا هغۀ سره څۀ څيز په قبضه کښې بيامونديږ شو نو هغۀ له به سخت ترينه سزا ورکيدے شي.
د دې نه علاوه هر چا سره چې څۀ آتشينه وسله يا کارتوسونه په قبضه کښې وي کوم چې افغان فوځونو ته د دې نه اګاهو ورکړې شوي وو يا هغوي پخپله راخستي وو هغه دې پيش کړي. د هر ديسي ساخت رائفل دپاره خواه دنباله پُر وي يا پټاخه دار درې روپۍ ورکيدے شي او د هر يورپين ساخت رائفل دپاره به پنځۀ روپۍ ادا کيږي. هر چا سره چې د دې نه پس دا وسله په قبضه کښې بيامونديږ شوه هغۀ له به سخته سزا ورکيدے شي. په اخر کښې زۀ د دې خبرې مشتهري کوم چې زۀ به هر هغه کس له پنځوس روپۍ انعام ورکوم څوک چې ما ته يو داسې سړے حواله کړي خواه هغه فوځي وي يا د سول خو چې هغۀ د انګريزي سفارت په حمله کښې حصه اخستې وي يا ماته دا شان اطلاع راکړي چې د هغې په سبب دا قسم سړے ګرفتار شي هم دومره رقم به د هغې کس د ګرفتاری بابت هم انعام ورکيدے شي. چې د چا د دريم ستمبر (تير شوي شوال) نه پس د انګريزي فوځونو برخلاف جنګ کړے وي او دغه شان هغه د هز هائي نس دحکومت برخلاف باغي شوے وي کۀ چرې دا قسم ګرفتار شوے يا حواله شوے سړے د افغان فوځ کپتان يا لفټيننټ وي نو دا انعام به پنځۀ اويا روپۍ وي او کۀ چرې هغه فيلډ افسر وي نو بيا به شپږ شلې روپۍ وي."
د دې اعلان د لوستو نه پس رابرټس سردار يحيیٰ خان او د هغۀ ورور ذکريا خان، مستوفي حبيب الله خان او وزير محمد شاه خان ګرفتار کړل. او نوره مجمع ئ رخصت کړه.
په بله ورځ هغه باقاعده طور په جلوس کښې رسالې او پنځو پلټنو سره د خپل رعب او طاقت د نمائش دپاره د ښار دننه په کوڅو کښې ګشت ولګولو. هغه په خپل کتاب کښې وائي چې د دې فوځي نمائش مدعا دا وه چې زۀ د کابل خلقو ته دا وښيم چې دا وخت ټول ښار د فيرنګيانو په رحم پروت دے. د دې نه پس هغۀ ميجر جنرل هلز د کابل ګورنر مقرر کړو. او نواب غلام حسين خان ئ هغۀ سره په طور د امدادي ولګولو. بيا هغۀ دوه عدالتونه مقرر کړل د يو عدالت ممبران کرنل ميکريګر، سرجن بيلو او ډپټي محمد حيات خان وو. دا عدالت پوليټيکل وۀ او د دې دپاره مقرر شوے وۀ چې هغه اسباب او واقعات معلوم کړي چې د کوم

تعلق په سفارت خاني باندې حملې کولو سره وهٔ او دا هم معلوم کړې چې د امير او د هغهٔ د وزيرانو په دې حمله کښې تر کومه حده پورې سازش وهٔ. لوستونکو ته د دې خبرې نه عبرت اخستل پکار دي چې د هغې قوم او سلطنت د مشر او د بادشاه د جرم د تفتيش دپاره يو فيرنګې کرنيل يو فيرنګې ډاکټر او يو هندوستانې ډپټي د څلورو پنځو سوؤ روپو تنخواه خور د فيرنګيانو نوکر مقررېږي چې د کوم قوم مشران او بادشاهان په يوه زمانه کښې د خپل اتفاق، عزيزولۍ او د غيرت په سبب د احمد شاه دراني او تيمور شاه غوندې پښتانهٔ وو چې هغوي د دريائې ستلج نه تر مشهد او د سندهه نه تر کشمير او تر ترکستان پورې خور وهٔ او يا اوس هغه وخت وهٔ چې هم د دې بادشاهانو د تاج و تخت وارث او جانشين د خپلو خانه جنګو او بې اتفاقو په سبب د يو غير قوم د لاسه د مجرم په طور د هغوي په مخکښې پيش وهٔ.
او د هغهٔ د مقدمې سماعت يو فيرنګې پوليټيکل افسر او يو ډاکټر او د يو هندوستاني ډپټي په مخکښې کيدو. دويم عدالت فوځې وهٔ چې د هغې صدر بريګيډير جنرل ميسي مقرر شو د هغوي په حواله دا کار وهٔ چې هغوي د هغه سردارانو او فوځيانو د مقدمې سماعت وکړي چې په چا باندې د سفارت د ممبرانو د قتل الزام وهٔ. دې دويم عدالت هغه سُور اور په ټول وطن بل کړو چې زرګونه خلق ئې په پانسۍ کړل. او د سفارت برخلاف د وړو وړو قصورونو په سزا کښې بيشماره کسانو له د موت سزا ئې ورکړه. د دې ظلم او ناترسۍ خبرونه په ټول افغانستان کښې د يو سر نه تر بله سره خوارهٔ شول او په تمام قوم کښې ئې د غم او غصې لمبې وچتې کړې. اخر هغه وخت راغې چې د فيرنګيانو دې ناروا سلوک د پښتنو غيرتي او توريالي قوم ته دِ خپل سپکوالي او بيوسۍ پوره پوره احساس ورکړو. هغوي د دې نه وړومبې د رابرټس په متفرق اعلانونو سخته دوکه خوړلې وه او د هغهٔ د انګريزي انصاف، عدالت او د رحم په بې معنې الفاظو سخت غوليدلي وو او په دې سبب هغوي ماسوائې د يو څو کسانو نه من حيث القوم خاموش او چپ پاتې شوي وو. ولې څهٔ وخت چې هغوي د دې نه خبر شو چې د کابل په ښار باندې مکمله فوځې قبضه ده او د هغوي بادشاه سره د هغهٔ د وزيرانو د انګريزانو په کيمپ کښې قيد دے او په خلقو باندې بلا امتياز د ظلم او بې انصافۍ اور بل شوے دے او فيرنګيانو د يعقوب خان د حکومت د مضبوطولو په ځاے خپل حکومت قائم کړو نو هغوي راويښ شول ولې صرف د رابرټس بې رحمۍ او بې ترسۍ راويښ کړل. اګر چې ټول قوم غير منظم وهٔ د خوردونوش د سامان نه محروم وو او د توپو او نور سامان جنګ د لاسه بالکل لاچار وو ولې د قام او د ملک په نوم هغوي دا شان قربانۍ وکړې او د پښتون قام دومره ننګيالي شهيدان شول چې رابرټس او د هغهٔ فوځ ئې د يوې لحظې دپاره په ارام پرې نښودو او په اخر کښې ئې فيرنګيان دومره تنګ کړل چې هغوي د دې تجويز په فکر کښې لګيا شول چې څرنګ به دافغانستان نه په عزت سره خپلې پښې وباسو او کومې خرابې

ارادې چې هغوي د افغانستان د تسخير په باره کښې لرلې هغه ئ د ناکام نه د هميش دپاره ترک کړې. د رابرټس د دې ظلم او بې رحمي خبرونه انګلستان ته هم ورسيدل او د دارالعوام په ځنې ځنې انصاف پسندو ممبرانو کښې ئ د نفرت او د خفګان جذبه راوچته کړه او هغوي خپل اواز د رابرټس برخلاف وچت کړو. د رابرټس نه د دې په سبب د دې ناروا کارونو جواب وغوښتې شو ولې څهٔ وخت چې د هغهٔ جواب پارليمنټ ته ورسيدو نو وزير هند او انګريزي حکومت د هغهٔ په مرسته ودريدل او هغه ئ بري الذمه کړو.

تر دې وخته پورې رابرټس خپل آمدورفت د شتر ګردن په لاره کړے وهٔ ولې د پښتنو قبائلو د شتر ګردن محافظ فوځ له هم د يوې ګړی ارام نهٔ ورکړے او هره ورځ به ئ په کرنل مني او د هغهٔ په فوځ چپاوونه کول. د دې نه علاوه چونکې ژمے هم راروان وهٔ نو رابرټس دا فيصله وکړه چې د شترګردن نه ټول فوځونه کابل ته راوغواړم او د مخکښې دپاره به د خيبر په لاره تګ راتګ کوم. د دې غرض دپاره هغهٔ بريګيډير جنرل هيوج ګف سره د څهٔ فوځونو شترګردن ته په دې غرض وليږلو چې هغه د کرنل مني فوځونه د غازيانو د لاس نه راخلاص کړي او کابل ته ئ راولي. چنانچه د ګف او د کرنل مني فوځونو په يو ځاے د دې غازيانو مقابله وکړه او د هغوي نه ئ ځان راخلاص کړو. هم په دې موقع د سيالکوټ نه څهٔ رساله د رابرټس په فوځ کښې د شامليدو دپاره شترګردن ته راورسيده او د ګف او مني فوځونو سره يو ځاے کابل ته راغله.

اوس رابرټس ته د خپلې کاميابۍ مبارکبادونه د هغهٔ د اعلیٰ افسرانو د طرف نه راتلل شروع شول. هم په دې ورځو کښې هغهٔ له يو خط د کمانډر انچيف په ذريعه د ملکهٔ انګلستان د طرف نه د خوشنودۍ او بل د وائسراے د طرف نه د مبارکبادۍ راغلل. د دې نه علاوه لارډ ليټن هغهٔ له د کماندر انچيف په سفارش د مقامي لفټيننټ جنرل عهده ورکړه. د دې غرض دپاره چې هغه د مشرقي افغانستان د ټولو انګريزي فوځونو د کمان اخستو قانوناً حقدار شي يعنې د هغې ټولو فوځونو چې کوم د کرمې او د خيبر په لار راغلي وو. د کرمې د فوځ کمان خو رابرټس په خپل لاس کښې وساتلو او د بل ډويژن کمان هغهٔ ميجر آر او برائټ سي بي له ورکړو. ولې اوس هغه په افغانستان کښې د شل زره فوځ او شپږ څلويښتو توپو کمانډر شو.

د دې نه پس رابرټس خپل فوځونه د سياه سنګ د غونډۍ نه د شير پور محفوظې چاونۍ ته رادننه کړل. ګوره فوځونه خو هغهٔ د پخو ښختو په بارکونو کښې ديره کړل او هندوستاني فوځ دپاره ئ د ختو او د برګو کوټې واچولې. او د بالاحصار د ورانولو حکم ئ وکړو. د هغهٔ په خيال کښې د بالاحصار ورانول ټول پښتون قوم له سزا ورکول وو ځکه چې دا قلا د عمرونو نه د افغان قوم د طاقت د هغوي د ازادۍ يوه ظاهري نښه وه او چونکې شاهي

محل هم په دې ځاے کښې اباد وۀ نو هغۀ دا خيال وکړو چې کۀ چرې د پښتنو دا زوړ عمارت تباه کړې شي نو دا به د دې خبرې يو مستقل يادګار پاتې شي چې فيرنګيان د خپلو هم وطنو د قتل بدل اخستې شي. په شير پور کښې هغۀ بيا د فوځ د خرڅ خوراک دپاره د هر قسم سامان راجمع کړو او چونکې حکومت هند د يعقوب خان دست برداري د حکومت افغانستان نه منظوره کړې وه له دې کبله رابرټس د لارډليټن د هداياتو مطابق د افغانستان د حکومت ټول واک اختيار په خپل لاس کښې واخستو او حکم ئې وکړو چې ټوله سرکاري خزانه، د غلې انبار خانې، او نور سرکاري مال دې هغۀ ته حواله شي او ترڅو چې فيرنګيانو د افغانستان د آئنده حکومت دپاره څۀ بل مستقل انتظام نۀ وي کړے تر هغې به ټولې ماليې، ټيکسونه، محصولونه وغيره ټولونه د هغۀ د هداياتو لاندې کيږي. يو څو ورځې پس د ميګريګر کميشن خپل رپورټ رابرټس ته پيش کړو د دې رپورټ مطابق د امير يعقوب خان ګناه دا ثابته شوه چې اګرچې هغۀ دا نۀ غوښتل چې د سفارت ممبران دې قتل شي او نۀ هغۀ ته دا پته وه چې هغوي به قتليږي ولې هغۀ د سفارت برخلاف د مظاهرې په کيدو يقيناً چشم پوشي کړې وه. ځکه چې د هغۀ دا خيال وۀ چې په دې چل به زۀ حکومت هند ته د دې وينا قابل شم چې زۀ د غير قوم د خلقو د حفاظت ذمه واري پخپل سر نشم اخستے. او له دې کبله دې هغوي د افغانستان نه واپس راوبللے شي. رابرټس خو په خپلو اعلاناتو کښې دنيا ته ښکاره کړې وه چې د کمناري او د انګريزي سفارت تقرر د امير يعقوب خان د خپل درخواست او خواهش مطابق شوې وه ولې اوس د هغۀ دا دروغ د هغۀ د خپل کميشن د رپورټ نه ثابت شول. او دا خبره هغوي پخپله دنيا ته څرګنده کړه چې يعقوب خان د انګريزي سفارت په راتلو ناراض وۀ او دا ئې غوښتل چې زۀ په څۀ طريقه ځان د هغوي نه خلاص کړم. بهرصورت رابرټس د کميشن رائې سره اتفاق وکړو اوسمدستي ئې حکومت هند ته سفارش وليږلو چې يعقوب خان دې هندوستان ته جلاوطن شي او څرنګ چې هغوي ته مناسب ښکاري هغه شان سلوک دې د هغۀ د جرم مطابق هغۀ سره وکړي. د رابرټس د دې رپورټ لوستو نه پس خپل وړومبے خيال نور هم مضبوط شو چې دا څومره مقابله چې انګريزي فوځ سره په کابل باندې په پيش قدمۍ کښې شوې ده دا د يعقوب خان په ايما شوې ده له دې کبله د هغۀ په رائې کښې کومو کسانو چې په دې جنګونو کښې د فيرنګيانو برخلاف حصه اخستې وه هغوي سره د باغيانو سلوک کول نامناسب وو. چنانچه هغۀ دا لاندينے يو بل اعلان د عامې معافۍ شائع کړو. ولې د معافۍ دا اعلان د وړومبي اعلان نه يوه مياشت پس وشو او خداے خبر چې په دې يوه مياشت کښې به کومې کومې واقعې پيښې شوې وي. رابرټس پخپله په خپل کتاب کښې د دې اعداد وشمار نۀ دي ورکړي چې څومره کسان په کوم کوم جرم کښې پانسي شول ولې د ډاکټر بيلو د تحرير نه معلوميږي چې هر پښتون به

چې پانسی له ورتلو نو په ډیرې خوشحالۍ خندا او د زړهٔ په اطمینان به ورتلو.

''کابل دولسم نومبر 1879ء

دا اعلان د هغې ټولو کسانو دپاره دے چې د چا هغې سره تعلق وي. په دولسم اکتوبر ما یو اعلان شائع کړے وهٔ چې په هغې کښې ما هر هغه کس له د انعام ورکولو وعده کړې وه چې څوک ماته دا شان سړے حواله کړي چې چا د دریم ستمبر نه پس د انګریزي فوځونو برخلاف جنګ کړے وي او دغه شان ئ خپل ځان د امیر یعقوب خان د حکومت برخلاف باغي ثابت کړے وي. ماته اوس دا قسم اطلاع رارسیدلې ده چې د هغې نه دا معلومیږي چې کومو کسانو د انګریزي فوځ په کابل باندې د پیش قدمۍ په دوران کښې مقابله کړې ده په هغوي کښې کم ازکم بعضې خلق دا شان دي چې هغوي دا مقابله په دې وجه کړې وه چې د هغوي دا یقین وهٔ چې امیر زما په کیمپ کښې قیدي دے او هغهٔ خپل فوځ او د کابل خلقو ته حکم کړے دے چې تاسو زما په طرفدارۍ کښې راپاځئ. دا قسم خلق اګرچې د حکومت برطانیه دشمنان دي ولې دا څوک نشي وئیلے چې هغوي د خپل بادشاه برخلاف بغاوت کړے دے او د حکومت برطانیه عظمیٰ دا دستور نهٔ دے چې هیڅوي د هغې دشمنانو نه د بدل اخستو کوشش وکړي چې څوک د هغوي مقابلې ته نور نهٔ ودریږي. ممکن ده چې کومو خلقو زمونږ برخلاف وسله وچته کړې ده په هغو کښې لږ کسان د بدنیتو خلقو په خبرو دا شان دوکه شوي وي مګر په ځاے د دې چې زهٔ ګناه ګار خلقو سره بیګناه خلقو له هم سزا ورکړم زهٔ په دې خبره یقین کولو ته تیار یم چې ټول یو شان دوکه شوي وو. په دې وجوهاتو زهٔ د حکومت برطانیه د طرف نه هغې کسانو ته د پوره او مکملې معافۍ اعلان کوم چې چا د دریم ستمبر نه پس د انګریزي فوځونو برخلاف په جنګ کښې حصه اخستې وي. بشرطیکه هغوي اوس هغه ټوله وسله مونږ ته حواله کړي چې کومه د هغوي په قبضه کښې ده او خپلو خپلو کورونو ته واپس لاړ شي. اوس زهٔ د انعام هغه پیشکش کوم چې ما د دا شان خلقو د حواله کیدو په باره کښې کړے وهٔ واپس اخلم. او د مخکښې دپاره به دې خلقو ته هیڅ قسم تکلیف په دې وجه نشي ورکیدے چې هغوي د انګریزانو د پیش قدمۍ مقابله کړې وه مګر په دې خبره دې هر یو سړے ځان ښهٔ پوهه کړي چې د دې عامې معافۍ فائده هغه سړے نشي وچتولې خواه هغه فوځي وي یا د سول چې څوک په سفارت باندې د حملې کولو په جرم کښې بلاواسطه یا بالواسطه شریک شوے وي. یا هغه کس چې د چا په قبضه کښې د دې نه پس دا شان مال بیاموندې شي چې د سفارت د ممبرانو ملکیت وي په داسې قسم خلقو به هیڅ رحم نهٔ کیږي. د دې نه علاوه زهٔ د هغه خلقو سره هم د معافۍ وعده نهٔ کوم چې چا ته په انګریزي کیمپ کښې د امیر د حیثیت پوره پته وه ولې بیا هم هغوي د انګریزي فوځونو برخلاف افغاني فوځونو او د کابل خلقو ته د وسلې وچتولو

لمسه وکړه. دا خلق ارادتاً د امیر د حکومت برخلاف د بغاوت د جرم مرتکب شوي دي او هر ځای چې هغوي بیاموندې شي نو هغوي سره به د باغیانو سلوک کیدې شي.

په اول دسمبر یعقوب خان د انګریزي فوځ د یوې مضبوطې دستې په حراست کښې هندوستان ته په ډبل مارچ واستولې شو او د دې نه یوه هفته پس سردار یحییٰ خان، ذکریا خان او وزیر محمد شاه خان هم د هندوستان په طرف ګرفتار جلاوطن کړې شول. رابرټس مستوفي حبیب الله خان هغوي سره په دې خیال هندوستان ته جلاوطن نهٔ کړو چې هغه به د افغانستان په انتظام کښې د فیرنګیانو دپاره فائده مند ثابت شي.

## درویشتم باب

د رابرټس د پښتنو سره د ظالمانه سلوک په وجه په پښتنو کښې د بیدارۍ احساس او محمد جان خان، مشک عالم خان ملا صاحب او د نورو غیرتي پښتنو په اواز د پښتنو بیداریدل. سره د بې سروسامانۍ د پښتنو د جنګ دپاره تیاریدل، او د مختلفو طرفونو نه په انګریزانو حملې کول او د انګریزانو پریشانه کیدل، او ځاې په ځاې د غازیانو د لاسه د انګریزي فوځ شکست خوړل، او اخر د انګریزانو د کابل ښار خالي کول او د قام د لاسه د امیر یعقوب خان مشرې زوې بادشاه کیدل، او د مشک عالم خان ملا صاحب د کابل ګورنر کیدل.

تر دې وخته پورې پښتون قام په منظمه طریقه او په اتفاق سره د انګریزي فوځ په کابل باندې د پیش قدمۍ مقابله نهٔ وه کړې هغوي دا محسوس کوله چې د فیرنګیانو دپاره دا یوه قدرتي خبره ده چې هغوي دې د خپل هم قوم خلقو او د خپلو نوکرانو د قتل مناسبه بدله د کابل د څنې ګناه ګار کسانو او د باغي فوځ د سپاهیانو نه واخلي او بیا دې د څهٔ کم و زیات فوځې بې اعتدالو نه پس واپس هندوستان ته لاړ شي. لیکن څهٔ وخت چې هغوي ولیدل چې انګریزي فوځونو د شیرپور په چاونۍ کښې مستقلې ډیرې ونیولې، د خرځ خوراک راجمع کولو دپاره ئې په چارچاپیره علاقو کښې د فوځ لویې لویې دستې واستولې او چې چا به هغوي له د غلې او د نور د خوراک سامان په ورکولو کښې پس و پیش کولو نو هغوي له به ئې سختې سزاګانې ورکولې. هرکله چې هغوي دا هم ولیدل چې زمونږ بادشاه او لوې لوې وزیران فیرنګیانو ګرفتار هندوستان ته جلا وطن کړل او د افغان فوځونو نه ئې وسله واخسته او د ملک تول سول او فوځي انتظام ئې په خپل لاس کښې واخستو. د مالیې او محصولونو جمع کول ئې پخپله شروع کړل، په سرکاري انبار خانو، میخزینونو، توپو، اسلحه خانو او په خزانه باندې ئې قبضه وکړه، بالاحصار او د هغې تول، ابادي او شاهي محلونه ئې وران کړل او خپلو سپاهیانو له ئې د هغې د ملبې نه بارکونه واچول او د تولو نه زیات دا چې د سفارت د

ممبرانو د قتل او د هغوي د مال تالا کولو په الزام کښې هغوي بیشماره خلق د کورټ مارشل (فوځي عدالت) په ذریعه په پانسي وخیژول او په ټول ملک او قام کښې ئ د یو سخت دهشت او خوف پیدا کولو کوشش وکړو او ټولو پښتنو سره د سخت سپکاوي د بې عزتۍ او د ذلت سلوک رواخستو او په دې کښې ئ د ګناه ګار او د بیګناه تمیز ونهٔ ساتلو نو سره د دې چې په هره قبیله کښې د یو سردار بل سره د یو خان بل خان سره او د یو ملک ملا بل ملک ملا سره بې اتفاقي او ورانه وه ولې هرکله چې هغوي د ټول قام ازادي، آبرو او ننګ په خطره کښې ولیدو نو مجبوراً هغوي خپلې ورانې او پرې جنبې شا ته وغورځولې او د فیرنګیانو برخلاف د غزا او جهاد کولو په نیت راپاڅیدل. ځاے په ځاے قومي مشرانو خپل ملک د دې بیروني دشمن نه د خالي کولو دپاره یو لوے تحریک شروع کړو او په حجرو او جماتونو کښې ئ د اولس خلقو ته د قوم، مذهب او د ملک په نوم د جهاد اپیل وکړو. د دې تحریک لوے مشران مشک عالم ملا صاحب، غازي محمد جان خان وردګ، میر بچه کوهستانے، سمندر خان د لوګر او غلام حیدر خان د چاردیهه وو. دا هم د دې کسانو او د هغوي د ملګرو د کوششونو نتیجه وه چې د افغانستان ملک د څهٔ مودې دپاره په فیرنګیانو باندې یو سُور اور شو او بالاخر هغوي دومره تنګ شو چې د افغانستان تاج و تخت ئ مجبوراً عبدالرحمٰن خان غونډې مضبوط او قابل سړي ته حواله کړو او د افغانستان نه ئ په حیا کښې په پښو رایستو شکر ادا کړو.

د مجاهدینو دې ډلې سره اګرچې نهٔ خو توپې وے او نهٔ ورسره د نور سامان جنګ دپاره څهٔ شاهي انتظام وهٔ ځکه چې هرڅومره فوځي سامان، اسلحه خانې، میخزینونه، توپې، کارتوسونه، ګولۍ او بارود چې د مودو نه شیر علي خان مرحوم په ډیر کوشش او محنت په بالاحصار کښې راجمع کړي وو په هغې ټولو فیرنګیانو قبضه وکړه. نهٔ خو د هغوي د خوراک څښاک دپاره د کمسریټ څهٔ محکمه وه او نهٔ د ژمي په واورو کښې د شپې تیرولو څهٔ خاص انتظام وهٔ او هر سړي به ځان له په خپل خرڅ او څهٔ د قام په چندو د دې هر څیز انتظام کولو. ولې چونکې د هر مجاهد په زړهٔ کښې د غیر قوم دې بې انصافو او ناکړدو د قومیت او د حب الوطني یوه جذبه مشتعله کړې وه نو نهٔ خو هغوي د خپلو لوږو تندو او نهٔ د موسم د سخت والي پروا وکړه او نهٔ د فیرنګیانو د منظم او باقاعده مسلح فوځونو، نهٔ د هغوي قابل قابل تعلیم یافته او په فن جنګ کښې د ماهر ماهر جرنیلانو نه او نهٔ د هغوي د توپو نه خوفزده شول. او هم په خپلې بې سروسامانۍ او بې قاعدګۍ کښې د ماه دسمبر 1879ء په شروع شروع کښې د فیرنګیانو مقابلې ته په میدان کښې راووتل. د مجاهدینو مشرانو دا تجویز وکړو چې د سهیل د طرف نه دې د لوګر، زورمت، منګل او جدران غازیان د غونډو په هغه سلسله باندې قبضه وکړي چې کوم د چارآسیا د کلي نه تر شهر دروازه پورې پرته ده او

د بره بالاحصار په استحکاماتو او د تخت شاه په سوکه باندې دې هم دوئ قبضه وکړي.
دکوهستان د غازیانو په ذمه دا کار شو چې هغوي دې د اسمائی او د کابل نه د قطب په ښار باندې چپاؤ وکړي.

د رابرټس پښتنو مخبرانو د دې ټول تجویز خبر هغهٔ له په وخت باندې ورکړو. هغهٔ دا خیال وکړو چې کهٔ چرې د غازیانو دا لوئ جمعیت یو ځل د کابل ښار په خواو شا کښې راجمع شو نو د کابل ښار او د هغې د مضافاتو زرګونه خلق به هغوي سره یو ځائ شي له دې کبله هغهٔ دا تجویز وکړو چې وړومبے د دې نه چې غازیان د کابل په خوا کښې را یوځائ شي ماله پکار دي چې په دې بیل بیل ټولي باندې زهٔ جدا جدا حمله وکړم او د یو ځائ کیدو نه ئ وړومبے منتشر کړم. مګر د رابرټس پښتنو مخبرانو بالخصوص سردار ولي محمد خان چې د هغهٔ د مخبرانو مشر وهٔ هغهٔ له د غازیانو د اصلي طاقت متعلق هیڅ خبرونه نهٔ وو ورکړي. په حقیقت کښې خو غازیان په ډیر زور او شور او اتفاق سره میدان ته راوتي وو مګر د رابرټس د خوشحالولو دپاره د هغهٔ دې مخبرانو هغهٔ ته د غازیانو طاقت او شمار ډیر لږ ښکاره کړے وهٔ. ولې لا ډیر وخت نهٔ وهٔ تیر شوے چې رابرټس په اصلیت باندې واقف شو او هغهٔ سمدستي جلال اباد ته جنرل برائټ له خپل قاصد ولیږلو چې د ګائیډز رجمټه په ډیر شتاب سره کابل ته راواستوه. په دې منځکښې هغهٔ د خپل فوځ هم دوه لویې دستې یو د بریګیډیر میکفرسن او بله د بریګیډیر بیکر دلاندې تیارې کړې. دمیکفرسن دستې ته هغهٔ حکم وکړو چې هغه دې د کوهستان په غازیانو قبل د دې نه چې هغوي د غزني او د میدآن غازیانو سره یو ځائ شي حمله وکړي او بیکر ته دا حکم وشو چې هغه دې د غازیانو د تیښتې لار ونیسي. څهٔ وخت چې هغوي ماتې وخوري.

میکفرسن په اتم تاریخ د قلعه افشار په لاره ارغنده ته روان شو او بیکر صبا سحر د دې غرض دپاره روان شو چې د ارغنده او د میدان تر منځ د غزني په لاره کښې کښیني چې د غزني او کوهستان غازیان د میر بچه د کمان لاندې د کاریز میر په مقام د قلعه افشار نه لس میله قطب ته پراتهٔ وو. په نهم تاریخ میکفرسن لا په قلعه افشار کښې دیره وهٔ چې د هغهٔ ګشتي دستو هغهٔ له خبر راوړو چې د ارغنده او د پغمان د طرف نه نور ډیر غازیان د کوهستان غازیانو سره د شاملیدو دپاره را روان دي. له دې کبله رابرټس میکفرسن ته حکم وکړو چې فوراً په کوهستانیانو باندې حمله وکړه چې د ارغنده او پغمان غازیان هغوي سره شامل نهٔ شي او د هغوي جمعیت زیات نهٔ شي. چنانچه میکفرسن په پوره زور په کوهستانیانو حمله وکړه او د یوې ښې مضبوطې جګړې نه پس ئ هغوي د توپو په زور پسپا کړل. غازیانو نه کافي نقصان وشو او د فیرنګیانو نه هم یو لفټیننټ کرنل فټز هوج او شپږ سرې زخمیان شول. د کوهستان پاتې شونکو غازیانو او د ارغنده او پغمان غازیانو په چارچاپیره کلو کښې شپه تیره

کړه. د دې ماتې خوړلو اصلي وجه دا وه چې غازيان لا په خپل پوره زور کښې راجمع شوي نۀ وو بلکې په وړو وړو ټولو کښې د کابل په طرف راروان وو او ځان ځان له ئې د جګړې کولو دپاره ځايونه خوښول. ميکفرسن شپه د سرخ کوتل او کاريز مير په منځکښې تيره کړه او بيګر د ډيرو ګرانو لارو وهلو نه پس د ميدان نه په لږه فاصله قبلې ته د ارغنده کلي نه اتۀ ميله لرې ديره شو. ديخوا نه غازي محمد جان خان د غازيانو يو لوے جمعيت سره د غزني نه د کابل په لورې راروان وۀ او د لسم او يوولسم دسمبر د منځ په شپه د قلع قاضي په خوا کښې ديره شوے وۀ ولې د غازيانو دا جمعيت هم کافي نۀ وۀ. ځکه چې دغه وخت لا د لوګر غازيان محمد جان خان سره نۀ وو يو ځاے شوي بلکې هغوي لا په دې انتظار کښې ناست وو چې غازي محمد جان خان سره د فيرنګيانو د جنګ څۀ نتيجه خيژي؟

رابرټس ميکفرسن ته حکم واستولو چې په يوولسم سحر سبا د پغمان په لاره ارغنده طرف ته د بيګر په لورې روان شو. ميسټي ته هغۀ حکم وکړو چې قلعه افشار نه نهۀ بجې سحر په يوولسم ميکفرسن سره د يو ځاے کيدو دپاره ارغنده طرف ته په هغه لار روان شه چې کومه د کابل ښار نه نيغه ارغنده ته تلې ده ولې تر هغې پورې غازيانو سره جنګ مۀ کوه تر څو چې ميکفرسن غازيانو سره جنګ نۀ وي نښلولے. دا نقشه رابرټس په محمد جان خان باندې د حملې کولو د ډير غور و فکر نه پس تياره کړې وه. چنانچه ميکفرسن او ميسټي دواړه د خپلو خپلو هداياتو مطابق په ډير هنر روان شول ليکن قسمت ورسره ياوري ونۀ کړه. ميسټي ته چې کومه لار رابرټس د ميکفرسن فوځونو سره د شامليدو دپاره ښودلې وه هغه د هغې نه په بله روان شو او قبل د دې نه چې هغه د ميکفرسن فوځونو سره د غزني په لاره يو ځاے شوے وے د غازي محمد جان خان لښکر د چارديهه په دره کښې په هغۀ د تندر په شان ناګهانه راپريوتلو. د ميسټي فوځونه د دې ناساپي او خلاف توقع حملې نه وارخطا شول او اګرچې هغوي د غازيانو دې سيلاب ته د بند اچولو ډير کوشش وکړو خو کامياب نۀ شول او د سترګو په رپ کښې په دواړو ډلو کښې لاس په لاس جنګ شروع شو. دغه وخت رابرټس هم پخپله په اس سور د جنګ په موقع د شيرپور نه راورسيدو. د شيرپور کمان هغۀ بريګيډير هيوج ګف له ورکړے وۀ. څۀ وخت چې هغه د ميسټي د فوځ دا خطرناک حالت وليدو نو هغۀ سمدستي د ميدان جنګ نه د واپس کيدو فيصله وکړه. د دې غرض دپاره هغۀ سمدستي جنرل هل ته چې اتفاقاً جنرل رابرټس سره دغه وخت يو ځاے شو حکم وکړو چې شيرپور ته لاړ شه او هيوج ګف د دې حال نه خبر کړه او ورته ووايه چې دوه سوه ګوره سپاهيان ديهه مزنګ ته راواستوه چې شيرپور ته د ميسټي د فوځ د تيښتې لار محفوظ شي. د رابرټس دا خيال وۀ چې زۀ د ميسټي فوځونه د ديهه مزنګ په لاره شيرپور ته واپس کړم. هغۀ جنرل هل ته دا حکم هم ورکړو چې هيوج ګف ته د دې هداياتو د ورکولو نه پس تۀ د کابل د

ښار دروازې بندې کړه او په خلقو کښې امن و امان وساته. د دې نه پس رابرټس لفټيننټ جان شرستن خپل اے ډي سي ميکفرسن ته واستولو چې فوراً د جنګ په موقع واپس راشه. په دې اثنا کښې د غازي محمد جان خان او د رابرټس د فوځونو په منځکښې جنګ ښۀ تود شوے وۀ. د رابرټس دا کوشش وۀ چې په څۀ طريقه د غازيانو لښکر د انګريزي فوځ نه بيرته وساتم چې د ميکفرسن فوځونه هم راورسي. ولې محمد جان خان د رابرټس په دې چل پوهه وۀ چنانچه هغۀ هم دا انتهائي کوشش کولو چې فوراً په انګريزي فوځ ورګډ شم او قبل د دې نه چې د هغوي جمعيت زيات شي هغوي له شکست ورکړم او د کابل په ښار باندې قبضه وکړم. رابرټس لا هم هغه شان په دې فکر کښې پروت وۀ چې د ميسي د طرف نه يو قاصد راغلو چې غازيان انګريزي فوځ ته راورسيدل او د هغوي پيش قدمي په نور هيڅ شان نشي منع کيدے. رابرټس هم د دې قاصد په خلۀ ميسي ته واپس حکم وليږلو چې توپې هم راواپس کړه او فوځ هم. په حفاظت سره د فوځ د پسپايي دپاره هغۀ رسالې ته په غازيانو باندې د حملې کولو حکم وکړو ولې د دې حملې هم په غازيانو باندې څۀ قابل ذکر اثر ونشو. او لفټيننټ کرنل کليليند د هغوي کمانډر سخت زخمي شو. په دې واپسي کښې د انګريزي فوځ نه يوه توپه په يو ځاے او باقي درې توپې په باغوانه کلي کښې پاتې شوې. اوس جنګ د باغوانه کلي خوا ته راورسيدو او غازيان په تښتيدونکي انګريزي فوځ پسې دې کلي ته رانوتل او د کلي خلقو هم په انګريزي سپاهيانو ډزې شروع کړې. دا وخت په انګريزي فوځ ډيره سختي راغله او کۀ چرې رابرټس او د هغۀ افسرانو خپله حوصله ساتلې نۀ وے نو انګريزي فوځ به بالکل تباه شوے وۀ. په باغوانه کلي کښې په رابرټس باندې پخپله د دې کلي ملک يوه لوي پيش قبضه سره راډځ کړو ليکن د اول بنګال کيولري يو مسلمان سپاهي مظهر علي نومے چې په هغۀ پسې پياده روان وۀ په دې سړي راټوپ کړو او د ملا نه ئې راونيولو او د يوې کندې په ويخ کښې ئې ګوزار کړو. انګريزي فوځونو د خپلو توپو د وړلو انتهائي کوشش وکړو ليکن ناکامياب شول. او هغوي منځکښې او غازيان ورپسې د باغوانه کلي نه ووتل او دواړه د ديهه مزنګ لار واخسته. ديهه مزنګ د باغوانه نه درې ميله لرې دے. او په دې ټوله لار د انګريزي فوځ او د غازيانو تر منځ په دې طريقه جنګ وشو چې انګريزانو به د غازيانو پيش قدمي له ډيل ورکولو په دې غرض چې د شيرپور نه دوه سوه ګوره سپاهيان ديهه مزنګ ته راورسي او د لارې دواړو طرفو ته په غونډو باندې قبضه وکړي. په دې منځکښې د ميکفرسن فوځونه راورسيدل او د هغۀ هراول د غازيانو عقب سره وجنګيدلو. فطرتاً محمد جان خان د خپل عقب د حفاظت په خاطر خپله پيش قدمي ورو کړه او د رابرټس فوځونو ته د ساه اخستو موقع په لاس ورغله. په دې منځکښې د شير پور نه دوه سوه ګوره د براون لو د کمان لاندې ديهه مزنګ ته راورسيدل او په کلي او د هغې په دواړو

طرفو ته په غونډو باندې ئ قبضه وکړه. رابرټس او د هغهٔ شکست خوړلي فوځ چې دا وليدل چې د هغوي د تيښتې لار محفوظه شوه نو په هغوي کښې بيا وينه وغړيده او يو بل ته ئ د خوشحالۍ نعرې ووهلې. په دې طريقه ورو ورو رابرټس خپل فوځ ديهه مزنګ ته راوښکلو او د ميکفرسن د فوځ په انتظار کښې کښيناستو. اوس قريباً قريباً ماښام نزدې شوے وهٔ له دې کبله څهٔ غازيانو په هندکي کلي او څنې د تخت شاه په غونډو باندې قبضه وکړه چې عين دبالاحصار د سر د پاسه سيوريے دے.

لوستونکو ته به ياد وي چې ميکفرسن ته دا حکم شوے وهٔ چې د يوولسم په سحر سبا به هغه کاريز مير ته د ارغنده لارې ته راوځي. او ميسي سره به يو ځاے کيږي ولې څرنګ چې وړومبے ذکر شوے دے ميسي د ارغنده لارې ته د رسيدو نه وړومبے غازيانو سره مخامخ شو او هغه ځاے ته هډو ونهٔ رسيدو. ميکفرسن هم په ځاے د دې چې سحر سبا روان شوے وے هغه اتهٔ بجې سحر د کاريز مير نه روان شو او څهٔ وخت چې هغه سرخ کوتل ته راورسيدو نو هغهٔ وليدل چې د غازيانو لويې لويې ډلې د پغمان او د ارغنده د طرف نه قلعه قاضي طرف ته روانې د . وړومبے ذکر شوے دے چې په قلعه قاضي کښې د محمد جان خان اصلي لښکر پروت وهٔ له دې کبله ميکفرسن په دوئ باندې د حملې کولو فيصله وکړه د دې دپاره چې دا غازيان د محمد جان خان لښکر سره يو ځاے نهٔ شي ولې څهٔ وخت چې ميکفرسن په دوئ باندې د حملې کولو دپاره وررروان شو نو د توپو د ډزو نه هغهٔ ته معلومه شوه چې د محمد جان خان اصلي لښکر سره جنګ نښتے دے خو په دې کښې شکمن وهٔ چې د بيکر فوځونو سره جنګ دے او کهٔ د ميسي فوځ سره. لږ ساعت پس ميکفرسن ته لفټيننټ نيول چيمبرلين پوليټيکل افسر خبر ورکړو چې دا جنګ د ميسي فوځ سره روان دے چونکې قريباً يولس نيمې بجې د غرمې د توپو اواز ناساپې بند شو او هغهٔ ته اطلاع راغله چې غازيان په کابل باندې راوختل او د هغوي هراول د ښار په خوا کښې په باغونو کښې رانوتو په دې وجه ميکفرسن په ډير شتاب سره هغه ځاے ته روان شو کوم ځاے چې د غازيانو او ميسي جنګ جاري وهٔ ولې د هغهٔ د رارسيدو نه قريباً يوه ګينټه وړومبے انګريزي فوځ مات شوے وهٔ او په وروستو روان وهٔ.

ميکفرسن قريباً دولس نيمې بجې د جنګ ځاے ته ورسيدو او په ميدان جنګ کښې د خپل فوځ د بيشماره مړو او د زخميانو د پريوتې نه ورته معلومه شوه چې انګريزي فوځ باندې ښه سخته تيره شوې ده. هر کله چې د ميکفرسن او ميسي دواړه فوځونه په موقع راورسيدل نو څهٔ غازيانو د ميسي فوځ سره او څهٔ د ميکفرسن فوځ سره جګړه جوړه کړه او د يو ښهٔ مضبوط جنګ نه پس د ماښام په وخت دواړه فريقه بيل شول غازيان لکه چې وړومبے ذکر شوے دے څه هندکي کلي ـه او اکثرو د قلعه قاضي سهيل طرفته په غونډو قبضه وکړه.

رابرټس دغه وخت میکفرسن ته حکم ولیږلو چې سمدستي دیهه مزنګ ته واپس شه. ځکه چې د غازیانو بیحده ډیر زور وو او رابرټس سره ویره وه چې د میکفرسن فوځ به خراب شي. د میکفرسن د رارسیدو نه فیرنګیانو ته یوه بله فائده دا وشوه چې کومې څلور توپې د باغوانه په کلي کښې د هغوي نه پاتې شوې وې هغه هغوي بیا شیر پور ته واپس راوړې. د ماښام اووه بجې وې چې میکفرسن دیهه مزنګ ته راورسیدو په دیهه مزنګ کښې د فیرنګیانو ملګري سرداران ولي محمد خان وغیره ټول راجمع شوي وو. دې غدارانو سره د فیرنګیانو د شکست په سبب ډیر غم پیدا شوے وۀ ځکه هغوي ته معلومه وه چې کۀ چرې غازیانو په کابل قبضه وکړه نو د هغوي مالونه او کورونه به د قام خلق د فیرنګیانو د دوستۍ په سبب ټول تالا کړي. رابرټس راتلو سره په هغوي پوري ونښتو او هغوي ته ئې ډیرې سپورې ستغې خبرې وکړې. چې تاسو زۀ د محمد جان خان د اصلي زور طاقت او د هغۀ د نقل و حرکت نه بالکل ناخبره ساتلے وم. هغوي په جواب کښې ورته ووئیل چې مونږ ته پخپله هم غلط خبرونه رارسیدلي دي. او په دې کښې مونږ بې قصوره یو. د رابرټس د دوئ په دې جواب تسلي ونشوه او هغه په دې نتیجه ورسیدو چې کۀ هر څومره یو پښتون د انګریزانو د وفادارۍ اقرارونه وکړي خو د قامولۍ په معامله کښې د هغۀ په مخبرۍ اعتبار پکار نۀ دے.

د میکفرسن د رارسیدو نه پس رابرټس او دوئ ټول په یو ځاے د دیهه مزنګ نه تیارۀ کښې شیرپور ته راورسیدل. په شیرپور کښې بریګیډیر هیوج ګف د وړومبے نه د چاوڼۍ د حفاظت دپاره پوره پوره پیش بندي کړې وه او په ډیر هنر او قابلیت سره ئې د چاوڼۍ دننه فوځ له ډاډګیرنه ورکړې وه. او هغوي ئې زړۀ بائللو ته نۀ وو پریښې. اګر چې راتښتیدلي فوځ د هغوي په زړونو کښې د خوف او د هیبت په پیدا کولو کښې هیڅ کمے نۀ وۀ کړے.

چونکې غازیانو اوس د کابل نه په چارچاپیره غونډو باندې قبضه کړې وه او د بالاحصار په سر باندې هم هغوي وچت سوارۀ پراتۀ وو په دې وجه رابرټس جنرل هل ته چې د کابل فوځي ګورنر وۀ حکم وکړو چې ښار سمدستي خالي کړه او فتح خان قزلباش ته خپل چارج ورکړه. دغه شان شکست خوړلے ژوبل او غمژن انګریزي فوځ په یوولسم دسمبر ماسخوتن په شیرپور باندې ورننوتو او د کابل ښار ئې د انګریزي فوځ نه بالکل خالي کړو. یو ځل بیا د انګریزي او هندوستاني فوځونو په مخکښې د 1840-41ء د مصیبتونو نقشه پیش شوه. او د راتلونکي واقعاتو انتظار ئې په ډیرې پریشانۍ او تشویش سره شروع کړو.

په دولسم تاریخ سحر د مردان ګائیډز د کرنل ایف جینکنز د کمان د لاندې راورسیدلو. په دې د انګریزي فوځ ملا ډیره مضبوطه شوه. دې سره سم بیکر په شیشه کښې رابرټس ته د قلعه قاضي نه خبر ورکړو چې زۀ هم کابل ته واپس در روان یم. د یوولسم تاریخ

پـه جنگ کښې د بیکر فوځ هیڅ حصه نۀ وه اخستې او غازیانو ښۀ په کامیابۍ سره د هغۀ او د رابرټ تـرمنځ د تګ راتګ لاره بنده کړې وه له دې کبله رابرټس سره د هغۀ د بریګیډ ډیر فکر وۀ لیکن د دې خبر په راتلو سره هغه ډیر مطمئن شو.

د دې نـه پس رابرټس میکفرسن له حکم ورکړو چې سحر وختي د ناشتې خوړلو نه پـس غـازیـان د تخت شاه د سوکې نه لرې کړه ځکه چې د تخت شاه غونډۍ عین د بالاحصار په سر سیوری دے. دا ګډ. یواځې میکفرسن سر ته ونۀ شو رسولے. چنانچه لږ ساعت د جنګ نـه پس رابرټس په دې پر مه شو چې په میکفرسن کښې دا طاقت نشته چې هغه د مخامخ نه په حـملـه غـازیان د خپل ځاے نه وخوځوي چنانچه هغۀ میکفرسن ته حکم ولیږلو چې نور بره د ختو کوشش مۀ کوه اوپخپل ځاے ودریږه تر څو چې د بیکر بریګیډ رارسیدلے نۀ وي. او هغۀ سره ئ سبا تـه سـحر په غازیانو باندې د شا نه د بني حصار د طرفه د حملې کولو امداد نۀ وي کـړے. غازي محمد جان خان هم د فیرنګیانو د دې تجویز پیش بندي شپه په شپه وکړه. او د بـني حصار او بالاحصار په منځکښې چې څومره کلي وو په هغې ئ قبضه وکړه او ډیر غازیان ئ د سـنګ نـوشتـه په لاره باندې هم مقرر کړل. بیکر په دیارلسم تاریخ اتۀ بجې سحر تخت شاه تـه د رسیـدو دپـاره پـه دې ټولو غازیانو باندې حمله شروع کړه. ورومبے خو هغۀ د بني حـصـار او د بـالاحـصار په منځکښې په کلو د راننوتو کوشش وکړواو د دې دپاره چې د دې ځـایـو نـو غـازیـان د تـخـت شاه غازیانو له امداد ور نۀ کړي ولې دې سره سم دې غازیانو هم د تـخـت شـاه سـوکـې تـه د رسیدو دپاره کوشش وکړو او دواړه ټولې د تخت شاه د سوکې نه رابنـکته یوې بلې غونډۍ سره مخامخ شول. د انګریزي فوځ توپو د غازیانو نوره پیش قدمي د دې غـونـډو نـه وړانـدې بـالـکل بنده کړه او د بیکر د بریګیډ یوې بلې مضبوطې دستې د دې غـونډۍ پـه غـازیـانـو بـانـدې حمله وکړه. په دې حمله کښې د مردان ګائیډز هم شامل وو. بهادرانـو غـازیـانـو پـه دې انـګـریـزي دستو باندې د دې غونډۍ د سوکو نه دا شان د ټوپکو دونـدو کـار شـروع کړو چې هغوي سخت وارخطا شول د هغوي مشر افسر لفټیننټ فاربیس پـه هـغـه ځاے هلاک شو او کلر سارجنټ ډرمنډ د هغۀ په خوا کښې مړ شو. خو د لږ ساعت د ګـبـراهـټ نـه پـس د هغوي یو بل افسر لفټیننټ ډک کننګهم فوراً منځکښې راټوپ کړو او د هغوي باټللي زړونو له ئ ډاډګیرنه ورکړه. او دا شان حمله ئ وکړه چې غونډۍ د هغوي لاس ته راغله. او د بني حصار او د تخت شاه په منځکښې د تګ راتګ لاره بنده شوه. دغه شان د تـخـت شـاه غـازیانو له د بني حصار د طرف نه د کومک د رارسیدو هیڅ امید پاتې نۀ شو. او هـغوي یواځې د غرۀ په سوکه پاتې شول. د دې نه پس ټول انګریزي فوځ په تخت شاه باندې د تـوپـو ډیـره سخته ګوله باري شروع کړه او یوه عظیم الشانه حمله ئ د غازیانو په دې اصلي مـورچـه بـانـدې وکـړه غـازیـانـو په یوه یوه چپه دې جمله فوځ سره سخته جګړه وکړه ولې په

هغوي بانديې هم د مخامخ نه او هم د شاه نه د توپو ګولۍ وريدې. او ډير بهادر ځوانان ترينه شهيدان شول. سره د دې هغوي درې ځلور ګينټې جنګ دا شان په نرتوب وکړو او ترڅو چې ټول په خپل خپل ځاے په غزا کښې شهيدان شوي نۀ وو او دشمن ته هم ډير زيات نقصان نۀ وۀ رسولے تر هغې پورې ئ انګريزي فوځ په تخت شاه بانديې قبضې کولو ته پرې نۀ ښودو ولې د فيرنګيانو دا قبضه څۀ ډير وخت پورې پاتې نشوه. هر کله چې رابرټس په تخت شاه بانديې په قبضه کولو کښې مصروف وۀ نو د غازيانو يو بل ټولې د سياه سنګ په غونډو بانديې په دې غرض قبضه وکړه چې د هغه ځاے نه د شيرپور په چاونۍ بانديې حمله وکړي. د سياه سنګ غونډۍ د شيرپور په چاونۍ بانديې بالکل سورې دي. له دې کبله رابرټس سره اوس د شيرپور متعلق سخت تشويش پيدا شو. چنانچه يو حکم خو هغۀ ميکفرسن ته وليږلو چې ديهه مزنګ پريږده او سمدستي د بالاحصار د حفاظت دپاره څۀ فوځ د شهر دروازه په غونډو وخيژوه او باقي فوځ شير پور ته راوله. بل حکم هغۀ بيکر ته وليږلو چې تۀ څۀ فوځ د کرنل مني د لاندې د تخت شاه د حفاظت دپاره پريږده او باقي فوځ شيرپور ته راوله خو په لاره بانديې د سياه سنګ غونډۍ د غازيانو نه صفا کړه. په تخت شاه بانديې د دوباره قبضه کولو دپاره محمد جان خان دا يو ډير د هوښيارتيا فوځي چال وچلولو. چې د شيرپور چاونۍ ئ په خطره کښې واچوله بيکر سياه سنګ ته د رارسيدو نه وړومبے په لاره نورو غازيانو سره چې د سياه سنګ او د بالاحصار په منځکښې پراتۀ وو مخامخ شو او سخته جګړه په فريقينو کښې پيښه شوه. د ډيرې کلکې مقابلې نه پس چې غازيان په هغې کښې ډير په زړورتيا وجنګيدل فيرنګيانو د توپو په زور غازيان د دې ځاے نه لرې کړل. او بيا بيکر سياه سنګ طرف ته مخه وکړه. رابرټس د دې مهم د سر کولو دپاره د بيکر امداد له د ميسي رساله هم ورواستوله او بيکر او ميسي دواړو د پلټنو، رسالو او د توپو يوه سخته حمله په غازيانو بانديې وکړه. غازيانو هم ښۀ په ګرانه خپل ځانونه بچ کړل او د دشمن نه ئ ډير لوے نقصان وکړو ولې اخر د سياه سنګ د غونډو په پريښودو مجبور شول چونکې د رابرټس په خيال د ديارلسم تاريخ کارروائي ټوله د هغوي د منشا مطابق وشوه له دې کبله د هغۀ دا رائ قائمه شوه چې په غازيانو کښې د نور جنګ حوصله اوطاقت پاتې نشو او هغوي به اوس زر خوارۀ وارۀ شي ولې هغۀ ته ډيره زر معلومه شوه چې سره د بې سروسامانۍ او بې انتظامۍ دا ځل په غازيانو کښې يوه پخه اراده او د قومي جوش يوه ناقابل بيان جذبه پرته وه او پښتانۀ خپل ملک د بهرني دشمن نه د خالي کولو د پاره هر قسم قرباني ورکولو ته تيار وو.

اګر چې د ديارلسم اوڅوارلسم تاريخ شپه په فيرنګيانو په خير تيره شوه او د غازيانو د طرف نه هيڅ څۀ خاص نقل و حرکت د فيرنګيانو په نظر رانغلو ولې تش د احتياط په خاطر رابرټس جنرل برائټ ته په جلال اباد کښې هم هغه شپه تار ورکړو چې د بريګيډير جنرل

چاپس ګف بریګیډ سمدستي کابل ته راواستوه دې سره سم هغهٔ د بتخاک نه د فوځ هغه دسته چې کومه هغهٔ د هغې د حفاظت دپاره لیږلې وه، واپس شیرپور ته راوغوښته او دغه شان ئې د راتلونکو خطراتو د مقابلې دپاره خپله پوره پیش بندي وکړه. اګر چې هغه د غازیانو د طرف نه تر ډیره حده پورې مطمئن وهٔ ولې هغه ډیر حیران شو چې هغهٔ ته د څوارلسم تاریخ په سحر خبر راغلو چې د غازیانو یو بل ښهٔ مضبوط ټولے د کوهستان په لاره په یوه غونډۍ ولیدے شو. څومره چې نمر تودیدلو هغه هومره نور خبرونه هغهٔ له راغلل چې د غازیانو نور ټولي هم د کابل د ښار او د چار دیهه د طرف نه د کوهستان دې غازیانو سره د شاملیدو دپاره راروان دي. او لږ ساعت پس هغه خبر ښو چې دې ټولو غازیانو د اسمائے په غونډو قبضه وکړه. اوس د رابرټس سترګې پرانستې شوې او هغهٔ ته معلومه شوه چې غازیان په اسانه زما مقابلې پرې ښودو ته تیار نهٔ دي. او چونکې هغوي د سهیل او قبلې د طرف نه په خپلو حملو کښې پوره کامیابي نهٔ وه حاصله کړې په دې وجه هغوي اوس د قطب د طرف نه خپله قسمت ازمائي کول غواړي. غازیانو د دې تحریک د ابتدا نه د رابرټس دا دستور پاتې شوے وهٔ چې هغهٔ به غازیان یو ځاے کیدو ته نهٔ پریښودل او هر ځاے کښې به ئې د هغوي په وړو وړو ټولو باندې په داسې طریقه حمله کوله چې هغوي به ئې یو سالم محاذ جوړولو ته نهٔ پریښودل او د هغوي د بیلو بیلو ټولو په منځکښې به ئې خپل فوځونه واچول. او په خپلو کښې به ئې د هغوي د آمدورفت او د کومک د رسولو لاره بنده کړه. نو بیا به ئې د بیل بیل ټولي فیصله وکړه. د رابرټس په دې تجویز دکامیابی وجه دا وه چې غازیان به د متفرق اطرافو نه په بیلو بیلو ټولو کښې کابل طرف ته د دې تحریک په سلسله کښې رارون شول او چونکې انګریزي فوځونه به هر وخت د هغوي په تلاش کښې وو نو هغوي به لا خپل منزل مقصود ته نهٔ وو رسیدلي چې انګریزانو به په هغوي باندې حمله وکړه او هغوي به ئې منتشر کړل. د دې دستور مطابق رابرټس د اسمائے د غونډو نه د غازیانو د لرې کولو دپاره دا طریقه اختیار کړه چې هغهٔ جنرل بیکر ته نههٔ بجې سحر حکم وکړو چې تهٔ د اسمائے د غونډو او د چار دیهه ترمنځ په یوه بله سوکه باندې چې د علي اباد کوتل قطب ته پرته وه قبضه وکړه. د دې غرض دپاره چې د اسمائے د غونډو غازیانو ته د کومک رارسیدو لاره بنده شي. بیکر د یوې زبردستې حملې نه پس چې په هغې کښې توپو،پیاده پلټنې او رسالې شرکت وکړو په دې سوکه قبضه وکړه او د اسمائے د غونډو د غازیانو د تک راتک او د کومک لاره ئې بنده کړه. د دې نه پس هغهٔ په اسمائے باندې د حملې دپاره روان شو. او د خپل فوځ یوه حصه ئې د لفټیننټ کرنل ډیلوایچ کلارک د لاندې د دغه سوکې د حفاظت دپاره پریښوده. رابرټس اوس د بیکر په حمایت کښې د چاونۍ او د بالاحصار نه د اسمائے په غونډو باندې د توپو یوه خوفناکه ګوله باري شروع کړه او دې سره ئې سم میکفرسن ته حکم ولیږلو چې تهٔ هم د بیکر

پـه مـرسـتـه کـښې هغهٔ له کومک وروليږه. د غازيانو او د دې ټول فوځ تر منځ يو هنگامه خيز جنـگ وشـو او غـازيـانـو پـه ډيرې بهادرۍ مقابله وکړه ليکن اخر د فيرنگيانو اعلیٰ وسلې او تـوپـو هـغـوي د اسمائے د غونډو په پريښودو مجبور کړل ولې هر کله چې د اسمائے د غونډۍ جـنـگ روان وهٔ او نـورو غازيانو وليدل چې د کلارک د يوې معمولي فوځي دستې په دغه بله سـو که باندې قبضه ده او په دې سبب د اسمائے غازيانو سره زمونږ د تگ راتگ لاره بنده ده نـو هـغـوي بيا پـه دې سوکه باندې د حملې کولو فيصله وکړه اگر چې د يو حمله آور لښکر دپـاره د دې وچتې سوکې نه د دې منظم انگريزي فوځ لرې کول مشکل کار وهٔ بالخصوص پـه دې وجه چې کلارک سره دوه توپې هم وے ولې غازيانو هيڅرې هم د خپل مرگ پروا نهٔ وه کـړے او نـهٔ ئ پـه دې مـوقـع وکـړه. او هـم دغـه رنگ د پتنگانو پشان په کلارک باندې ورروختـل اوس دا وخـت د مـاسپښين وهٔ. ديخوا نه ميکفرسن په شيشه کښې رابرټس له خبر ورکـړو چې نـور غازيان په ډير طاقت کښې قطب طرف ته د کوهستان غازيانو سره شامليدل غـوارې. او د دې غـرض دپـاره هـغـوي د عـلـي اباد پــه کوتل باندې درروان دي. رابرټـس سـمـدستي بيکر ته حکم وکړو چې د کلارک امداد له روان شه او پخپله ئ هم څهٔ امدادي فـوځ دچـاونـۍ نـه هـغـهٔ لـه واستـولـو. پـه دې کښې د توپو درزار او د ټوپکو د بارونو اواز په شيرپور کښې واوريدې شو. رابرټس سمدستي دور بين ولگولو او وې ليدل چې د غازيانو او د کـلارک د دستې په منځکښې يو خونريز جنگ انښتے دے. د رابرټس تر دې وخته پورې هم دغه يقين وهٔ چې زهٔ به د غازيانو په بيلو بيلو ټولو باندې د حملې کولو په طريقه هغوي ټول تـس نـس کـړم. او پـه دې رنگ بـه پـه هغوي کښې د بيا بيا راټوليدو قوت ورک کړم. ولې غـازيـانـو تـه د رابـرټس په دې طريقه کښې هم لويه فائده وه د هغوي يو ټولے به لا د رابرټس فـوځ سـره پـه يو مقام په جنگ کښې نښتے وهٔ چې هغوي به د هغې نه په زيات تعداد کښې په بـل مـقـام پـه فيرنگيانو باندې د حملې کولو دپاره راښکاره شول او دغه شان به ئ د رابرټس فوځـونـه ځاے په ځاے تقسيم کړل. د لږ ساعت د ډزو نه پس رابرټس په خپل دوربين کښې وليـدل چې کـلارک سـره د خپـلـه فـوځـه دا سوکه پريښوده او د دې غونډۍ نه راوتښتيدو غازيانو په دې ځاے په داسې جوش حمله وکړه چې هغوي د کلارک نه دواړه توپې هم قبضه کـړې او پـه سـو کـه ئ هم قبضه وکړه. دا مقام انگريزي فوځ د ډيرې سختې مقابلې نه پس په لوے تـکـلـيف قبضه کـړے وهٔ له دې کبله د هغوي د لاسه د دې ځاے وتل د هغوي دپاره ډير د مـايوسۍ باعث شو. دې سره سم د غازيانو بل يو ټولے د سياه سنگ په غونډو راښکاره شو. د څـوارلسم تاريخ تر غرمې پورې د رابرټس دا يقين وو چې د پښتنو غازيان په خپل ځان کښې د انـگـريـزي مـنـظم فوځ په مخکښې د ودريدو حوصله نهٔ لري ولې اوس هغهٔ په خپلو سترگو وليـدل چې انگريزي فوځ په ډاګه ميدان کښې هغوي سره د جنگ په ذريعه د خوررولو طاقت

نهٔ لـړي. ځکه چې څهٔ وخت د هغوي ټو ټولے منتشر شي نو هغه درنګ د هغوي دوه درې نور ټولې چې د وړومبو نـه هـم زيـات خطرناک وي راښکاره شي دغه وخت د رابرټس په زړهٔ کښې خيال پيدا شو چې د انګريزي فوځ ټولې دستې آهسته آهسته د غازيانو په قابو کښې راشي او پـه خپـل خپل ځـاے د هـغـوي د لاسـه تباه شي په دې وجه مناسب دي چې دا ټولې دستې د چـارچاپيره نه واپس راشي. او د شيرپور په چاوڼي کښې دننه پناه واخلي ولې قبل د دې نـه چـې هغهٔ خپلوجرنيلانو ته حکم ورکړے وے، هغهٔ د ميکفرسن نه په شيشه کښې ټپوس وکـړو چـې د غـازيـانـو څـومره طاقت دے او د کوم طرف نه راروان دي. هغهٔ په جواب کښې ووئيل چې بيشـميـره غـازيـان هم د قطب او هم سهيل او هم ذ قبلې د طرف نه راروان دي او گـرى په گرى د هغوي شمار نور هم زياتيږي. دې خبر رابرټس په دې فيصله مجبور کړوچې هـغـه خپـل جـرنيـلان واپـس شيرپور ته راوغواړي اګرچې د هغهٔ مغرور طبيعت د يوې لحظې دپاره هم دا نهٔ غوښتل چې د پښتنو د زور په مخکښې دې هغه خپل فوځونه واپس کړي د هغهٔ لوے افسـوس او خفگان دا وهٔ چې په کوم چل او هنر هغهٔ غازيانو له شکست ورکول غوښتل هـم پـه هغه چل کښې هغه د غازيانو د لاسه ووهلے شو. چنانچه د څوارلسم تاريخ په دوه بجې د ورځـې بيـکـر او ميکفرسن دواړو ته د واپس کيدو حکمونه ورسيدل. او هغوي سمدستي د شيـرپـور پـه طـرف خپـلـه پسپـائـي شـروع کـړه. غازيان سمدستي پوهه شول چې انګريزانو شـکسـت وخوړو او اوس د ميدان نه د تښتيدو تکل کوي چنانچه هغوي په دې واپسي کښې پـه انـګريزي فوځ باندې بيشانه په ډير زور شور حملې وکړې او څهٔ وخت چې به غازيانو پرله پسـې د هـغـوي پـه يـوه يـوه مورچه باندې قبضه کوله او انګريزي فوځ به وروستو کيدلو نو د افـغـانـي لښـکـر حوصلې به هغه هومره زياتيدلې او د انګريزي فوځ وار به خطا کيدلو. عين د چـاوڼـى تـر خـلـې پورې په ټوله لار د غازيانو او د فيرنګيانو د فوځ په منځکښې لاس په لاس جـنـګ وشو او پښتنو غازيانو په خپل دشمن باندې د خپل زړهٔ زاړهٔ ارمانونه وويستل او خپلې پيش قبضې، ټوپکونه، تورې او برچې ئې ښې استعمال کړې انګريزي فوځ هم د خپلو بهادرو افسـرانـو د مشرى لانـدې سـخته مقابله وکړه او ماښام تيارهٔ ئې خپل ځان او سامان جنګ د شيـرپـور چاوڼى ته راورسولو. پښتنو فوراً په ډير جوش او خوشحالي په بالاحصار او د کابل پـه ښـار قبضـه وکـړه. موسيٰ جان د يعقوب خان مشرے زوے ئې بادشاه کړو او مشک عالم خان ملا صاحب د کابل ګورنر شو او ټولو يو بل له په دې قومي فتح باندې مبارکے ورکړو.

# څلیریشتم باب

د رابرټس د نوي حالاتو نه د وائسرایے هند او کمانډر انچیف خبرول، د رابرټس ټوله توجه د شیرپور د فوځي چاوڼۍ د مضبوطولو په طرف راګرځیدل، د داؤد شاه سپه سالار ګرفتاریدل، د شیرپور په چاوڼۍ د غازیانو حمله او د یو خونریز جنګ نه پس د غازیانو شکست خوړل او یو ځل بیا د انګریزي فوځ په کابل او بالاحصار قبضه کول او د جنرل هل د کابل ګورنر مقرریدل. او د کابل او بالاحصار د استحکام دپاره د انګریزانو نوي تدبیرونه کول.

څۀ وخت چې د چاوڼۍ دروازې پورې شوې او چارچاپیره په برجونو او په فصیل پهرې ولګیدې نو رابرټس فوراً د تار په ذریعه د څوارلسم دسمبر ټول واقعات وائسرایے هند او کمانډر انچیف ته ولیږل څکه چې هغۀ ته معلومه وه چې د دې فتح نه پس به د غازیانو وړومبے کار دا وي چې هغوي به هندوستان سره زما د خبر رسانۍ تارونه پریکوي او ځایے په ځایے به زما د آمدورفت په څوکو حملې کوي. رابرټس هغوي له دا اطلاع هم ورکړه چې ما د بریګیډیر جنرل چارلس ګف بریګیډ ته په ډیر شتاب د ګندمک نه کابل ته د روانیدو حکم کړے دے. رابرټس دا خبره هم هغوي ته وکړه چې جنرل برائټ له نور امدادي فوځونه هم د هندوستان نه رالیږل پکار دي چې هغه یو خو زما د آمدورفت لاره هندوستان سره پرانستې وساتلې شي او بله دا چې کۀ چرې ماته د نور امداد ضرورت پیښ شي نو چې بیا هغه ماته د نور کومک د راستولو قابل وي. رابرټس په دې تار کښې وائسرایے ته دا اطمینان هم ورکړو چې انګریزي فوځونو ته في الحال هیڅ خطره نشته. د سپاهیانو دپاره خرځ خوراک د څلورو میاشتو دپاره بالکل کافي دے او د ټوپکونو او د توپو دپاره دومره کارتوسونه او ګولۍ شته دے چې تر دریو څلورو میاشتو پورې ښه مقابله کیدے شي. دغه شان رابرټس خپلو مشرانو له د حقیقي صورت حال ټول تفصیلات ورکړل او خپل ځان ئے د څلورو میاشتو محاصرې ته تیار کړو.

د شیرپور په چاوڼۍ کښې علاوه د انګریزي فوځونو نه د افغانستان هغه قام فروش او غداران ملک سرداران هم سره د خپلو خپلو ملاتړو پناه اخستې وه چې چا د غیر قوم د حمله آورو سره د خپل ملک او قام برخلاف د لام د ابتدا نه تر دې وخته پورې هر قسم امداد کړے وۀ او په دې وجه هغوي سره دا فکر وۀ چې قوم پرست طبقه اوس هغوي له د هغوي د غدارۍ او د بې ایمانۍ سزا ورکوي. اګرچې رابرټس هغوي له په چاوڼۍ کښې د وسیدو اجازت خو ورکړو لیکن په کوم نظر چې هغۀ هغوي ته کتل د هغې اندازه د رابرټس د دې الفاظو نه ښه کیدے شي:

" They were far from being welcome guests, I could not trust them;

ostensibly, however, they were our friends, and I could not refuse their petition."

ترجمه :" هغوي په هيڅ شان زمونږ خوښ ميلمانهٔ نهٔ وو ځکه چې ما په هغوي اعتبار نشو کولے ليکن په ظاهره هغوي زمونږ دوستان وو او ما د هغوي درخواست نهٔ شو نامنظورولے."

د څوارلسم تاريخ د شکست نه پس فيرنګيانو په شيرپور کښې د يوې وړدې مودې د محصور کيدو دپاره تياري شروع کړې د چاونۍ په استحکاماتو کښې خو هغوي د ابتدا نه په کابل کښې داخليدو سره ډيرې تبديلي هم په دې خيال کړے وے چې سبا به يوه ورځ مونږ په دې ځاے کښې په پناه اخستو مجبور شو چنانچه راتلو سره رابرټس يوه کميټي چې په هغې کښې بريګيډير بيکر لفټيننټ کرنل پرکينز، کمانډنګ رائل انجنيرز او لفټيننټ کرنل کارډن د توپخانې افسر شامل وو، د دې غرض دپاره مقرر کړو چې هغوي د شيرپور د مستحکم کولو دپاره مکمل تجاويز پيش کړي. شير علي خان مرحوم پخپله هم د دې چاونۍ په تعمير او د هغې په مضبوطولو يو عظيم الشان رقم لګولے وۀ ليکن د هغې د نمر خاتهٔ طرف لا هم هغه شان نامکمل پاتې شوے وۀ چې فيرنګيانو په کابل باندې قبضه وکړه. د دې چاونۍ قدرتي محل وقوع دا شان وه او هغه جوړه شوې دومره بيحده مضبوطه وه چې يو ډير لوے فوځ هم بغير د قلعه شکن توپو نه هغه اخستې نهٔ شوه. قطب طرف ته خو د هغې بي بي ماه رو غونډۍ وے چې د هغې او د کوهستان د جنوبي سلسله کوه تر منځ يو جهيل پروت وۀ چې د هغې په سبب هيڅوک هم د قطب د طرف نه په دې غونډو نشو راختلې. د دې چاونۍ قبلې او سهيل ته ډير مضبوط شل شل فټه وچت ديوالونه جوړ شوي وو او د دې اندروني ديوالونه د حفاظت دپاره په ديرش فټه فاصله باندې نور بهرني ديوالونه چې پنځلس فټه وچت جوړ شوي وو په دې ديوالونو کښې په لږه لږه فاصله باندې دا شان غونډ غونډ لوے لوے او مضبوط برجونه وو چې د هغې نه په يو حمله آور فوځ نه د اړخ د طرف نه زبردستې ډزې کيدے شوې. دا قسم غونډ او وچت وچت برجونه په څلورو واړو ګوټونو باندې هم خيژولي شوي وو او د دې کميټي په سفارش شپږ نورې شنګرې د بي بي ماه رو په غونډو باندې تعمير کړې او د توپو اود فوځ دپاره په دې غونډو لوے لوے کهۍ وکنستلے شوې. دغه شان د شمال مشرق طرف د حفاظت دپاره هم نور استحکامات جوړ شول. او هغه ټولې کارروايي په عمل کښې راغلې چې د چاونۍ د حفاظت دپاره اشد ضروري وے. دا ټول حفاظتي انتظامات چې د وزګارتيا په وخت کښې سر ته رسيدلي وو اوس د انګريزي فوځ دپاره بيحده ډير سودمند ثابت شول.

د چاونۍ د فصيل د فوځي حفاظت کار رابرټس په پنځهٔ حصو کښې تقسيم کړو او هرې يوې حصې له ئ يو يو افسر کمانډر مقرر کړو. دا افسران حسب ذيل وو : بريګيډير جنرل ميکفرسن، کرنل جينکنز، بريګيډير جنرل هيوج ګف، ميجر جنرل هلز، او کرنل

براون لو. د چاونۍ د منځ کمان هغهٔ بریګیډیر جنرل میسي ته ورکړو چې په هغه ځاے کښې واښهٔ او د سوزولو لرګي پراتهٔ وو. بریګیډیر جنرل بیکر له هغهٔ د ریزرو کمان ورکړو او د بي بي ماه رو د غونډو په کندو ئ ولګولو. د دې دپاره چې هغه په اسانتیا سره د چاونۍ نمرخاتهٔ ته هم او نمر پریواتهٔ ته هم د امداد دپاره د تللو قابل وي. ځکه چې په ټوله چاونۍ کښې هم دا دواړه طرفونه کمزوري وو. د چاونۍ په بیله بیله حصه کښې د خبر رسانۍ تارونه ولګیدل اود شیشې په ذریعه د خبر ورکولو انتظام هم مکمل شو.

د څوارلسم نه تر دوه ویشتم تاریخ پورې ماسواۍ د معمولي ډزو نه نهٔ خو غازیانو څهٔ قابل ذکر جګړه وکړه او نهٔ فیرنګیانو د هغوي په کار کښې څهٔ دخل ورکړو. رابرټس دا ټولې ورځې شپې سره د خپلو جرنیلانو دچاونۍ د استحکاماتو په انتظام کښې صرف کړې. او په دې ټوله عرصه کښې داسې یو احتیاط او تجویز نهٔ وهٔ چې هغهٔ د چاونۍ د بچاؤ دپاره اختیار نهٔ کړو. د هر قسم بندوبست د تکمیل نه پس اوس هغهٔ سره صرف دخپل فوځ د سپاهیانو د وفادارۍ متعلق شک وهٔ ځکه چې پښتنو غازیانو به همیش هغوي ته د مذهب په نوم اپیل کولو چې تاسو د فیرنګیانو برخلاف په دې جهاد کښې زمونږ سره شریک شئ او هغوي ته به ئ د کفارو په نوکرۍ سخت بدرد وئیل. دا قسم مسلمانان سپاهیان زیات تر په ګائیډز او پنځم نمبر پنجابي پلټن کښې وو بل څهٔ وخت چې رابرټس د دې دواړو رجمټو کمان افسرانو کرنل جینکنز او میک کوین سره په دې مضمون خبرې وکړې نو هغوي هغهٔ له د دې سپاهیانو د وفادارۍ مکمل اطمینان ورکړو. د داؤد شاه سپه سالار افغاني د خدماتو باوجود د رابرټس سترګې اوس هغهٔ ته هم خرې شوې ځکه چې د هغهٔ ډیر نزدې نزدې خپلوان د محمد جان خان او مشک عالم ملا صاحب ملګري وو او چونکې رابرټس هیڅ څیز خپل قسمت ته نهٔ پریښودلو له دې کبله هغهٔ د دې اغزي د لرې کولو هم فیصله وکړه او داؤد شاه ئ ګرفتار کړو.

په اتلسم تاریخ رابرټس له د چارلس ګف خط راغلو چې زهٔ ایله تر جګدلک پورې چې د ګندمک نه یوویشت میله لرې دے رارسیدلے یم او ما کښې دومره زور نشته چې کابل ته ورسم. واقعه دا وه چې دغه ټول ملک د فیرنګیانو برخلاف راپاڅیدلے وهٔ او د چارلس ګف په مخکښې او وروستو ئ لار نیولې وه ولې چونکې رابرټس ته په کابل کښې د هغهٔ د بریګیډ سخت ضرورت وهٔ په دې وجه هغهٔ په خپله ذمه وارۍ هغهٔ ته حکم ولیږلو چې هر څهٔ چې کیږي ته سمدستي د کابل په لورې راروان شه. چارلس ګف د دې حکم مطابق فوراً روان شو او په دوه ویشتم لته بند ته راورسیدو.

دیخوا غازیانو دا فیصله وکړه چې د شیرپور په چاونۍ باندې په درویشتم تاریخ په سحر حمله کوۀ هغوي د شپې یو لوے اور د اسمائې په غونډو په دې نیت بل کړو چې ټول

عالم خبر شي او ځان تيار کړي او په يو ځاے باندې په شيرپور باندې حمله وکړي. هر کله چې رابرټس ته د دې پته ولګيده نو ټول فوځ ته ئ د تيارئ حکم ورکړو او سحر لا څيره نهٔ وه وهلې چې د انګريزي فوځ هر يو سړي خپله وسله د جنګ دپاره واچوله. د شيرپور د مضبوط او پخو ديوالونو د ماتولو دپاره د توپو ضرورت وۀ ولې د افغانستان د حکومت ټولې توپې فيرنګيانو په کابل او په بالاحصار باندې د قبضې کولو په وخت کښې نيولے وے. غازيانو سره صرف ټوپکونه وو او هغه هم د زړې نمونې. چنانچه هغوي د حملې ابتدا صرف د ټوپکو په باړونو چلولو وکړه مګر په هغې د شيرپور د چاونۍ په ديوالونو څۀ اثر کيدے شو. اخر د ډيرې شيبې د ډزو نه پس غازيانو په ديوالونو باندې د ختو کوشش وکړو او د پتنګانو په شان ئ ځانونه د فيرنګيانو په توپو او ټوپکو وروغورځولو ولې هر څومره حملې چې هغوي په دې طريقه وکړې نو هغه انګريزي فوځ د شير پور د محفوظ مقاماتو نه ښې په کاميابۍ سره وتمبولې. د اوو بجو نه لس بجو سحره پورې په دې دود جنګ وشو او بيشانه ډير غازيان شهيدان شول ولې هيڅ کاميابي ئ حاصله نۀ کړه. د لسو بجو نه پس يو ساعت د غازيانو په حمله کښې څۀ کمے راغلو ليکن يوولس بجې ئ بيا په ډير زور شور سره حمله شروع کړه. د انګريزي فوځ د طرف نه هم دا ځل د چاونۍ نه بهر په يو اړخ باندې حمله وشوه چې په هغې کښې توپې او رسالې شرکت وکړو. تر يوې بجې غرمې پورې په دواړو فريقو کښې يو سخت خونريز جنګ وشو ولې اخر غازيان د انګريزي فوځ د توپو او د رسالې په مخکښې مات شول او د ميدان نه فرار شول. په دې غازيانو پسې د ميسي رسالې تر لرې لرې پورې تعاقب وکړو او چې شپه کيده نو د شير پور نه چارچاپيره ميدان د غازيانو نه خالي شوے وۀ. په دې شکست د غازيانو جمعيت منتشر شو او د څۀ وخت دپاره فيرنګيان بيا بيغمه کښيناستل. اګر چې غازيانو په دې حمله کښې د سامان جنګ او د خوردونوش د کمي او د نورې بې سروسامانۍ په سبب کاميابي ونۀ کړه مګر په کومې ځوانمردۍ او زړورتوب چې هغوي په دې جګړه کښې قرباني ورکړه د هغې زبردست او قابل د نۀ هيريدو اثر او رعب د فيرنګيانو په زړۀ باندې پريوتو. غازيانو د دې جنګ نه پس کابل او د هغې نه چارچاپيره علاقه پريښوده او په غرونو کښې ئ ځان له جالې جوړې کړې.

په څليريشتم تاريخ د چارلس ګف بريګيډ هم شيرپور ته راورسيدو او جنرل هلز بيا د کابل ګورنر مقرر شو. د چاونۍ نه بهر په يو زر قدمه کښې دننه دننه رابرټس د کلو ټوله ابادي وړانه کړه او بالاحصار باندې ئ بيا قبضه وکړه. د دې نه علاوه هغۀ د بالاحصار په استحکاماتو کښې نورې اضافې وکړې او د شهر دروازه په غونډو باندې ئ ځاے په ځاے مورچې او برجونه جوړ کړل. د سياه سنګ د غونډو په جنوبي مغرب طرف باندې يوه مضبوطه قلا واچولې شوه چې بيا د بالاحصار او د کابل ښار د دې طرف نه په خطره کښې

پـرې نـهٔ وځـي. يـوه بله قلا د اسمائي په غونډو باندې د دې غرض دپاره وخيژولې شوه چې د چـار ديهه د طرف نه د كابل ښار محفوظ شي. دې سره سم رابرټس يو ډويژن نور فوځ د خپل طـاقـت د زيـاتـولـو دپاره راوغوښتو. دا ډويژن په لږو لږو حصو كښې كابل ته راورسيدو. او ميجر جنرل جے راس چې بيا وروستو جنرل سر جان راس جي بي شو د هغې سالار مقرر شو.

## پنځويشتم باب

د انګريـزانـو پـه افـغـانستـان باندې د هميشه دپاره د قبضې نه مايوسي، د افغانستان ملک د ټـکـړې ټـکـړې کـولو په تجويز د رابرټس او لارډ ليټن متفق کيدل، د عبدالرحمٰن خان د روس نه راروانيـدل او په انګريزانو د حملې په خيال د هغهٔ تياري کول، او د انګريزانو عبدالرحمٰن خان سره خـط و کتابـت کـول. د عـبـدالـرحـمٰـن خـان د انګريزانو د شرطونو نه انکار کول او د انګريزانو د يعقوب د ډلې مشرانو سره خط و کتابت شروع کول، په انګلستان کښې د قدامت پسندې ډلې په مـقـابـلـه کښـې ازاد خيـاله پارټي برسراقتدار راتلل او د رابرټس او نورو انګريزي افسرانو طبيعت خړيدل، د انګريزي فوځونو د افغانستان نه واپسي.

د نـاکـاميـابـۍ نـه پـس پښتنو ظاهري طور خو په شمالي افغانستان کښې د فيرنګيانو برخلاف څهٔ قابل ذکر جنګ ونهٔ کړو ولې ځايے په ځايے په عام خلقو کښې د هغوي برخلاف د نفرت او د دشمنۍ جذبات بدستور پراتهٔ وو او دا ئ مصممه اراده کړې وه چې د انګريزانو د حـکـومت جغ به هيچرې په خپلو اوږو پرې نهٔ ږدو. دې کښې شک نشته چې فيرنګيانو په لـويو لويو ښارونو باندې د خپل فوځ په زور قبضه کړې وه ولې ديهاتي علاقې د هغوي د اثر او رسـوخ نه بالکل بهر وے او هيچا هم د هغوي حکومت ته غاړه نهٔ ايښودو. په جنوبي او مغربي افـغـانسـتـان کښـې بـدستـور د غازيانو لويو لويو ټولو د فيرنګيانو د رسد په قافلو باندې حملې کـولـې او پـه مـلـک کښې به ئ هغوي په ازادۍ سره ګشت لګولو ته نهٔ پريښودل. اکثر به دا غـازيـان نـاسـاپـه د فوځ په دې دستو راپريوتل او سامان اوّ څاروي به ئ دواړه ترينه تالا کړل. چـارچـاپيـره مـلـک کښـې اړے ګـړے او بـدامني وه او د فيرنګيانو ملګري خلق به په امن او سلامتي سره د يو ځايے نه بل ځايے ته تلے نهٔ شو. دغه حالت د مشرقي او شمالي افغانستان هم وهٔ چې سر ډانلډ سټورټ ته حکم وشو چې تهٔ سره د خپلو فوځونو د قندهار نه غزني طرف ته روان شه او په لاره په دې ټوله علاقه کښې د امن قائمولو کوښش وکړه.

ديـخـوا ته په انګريزي سياستدانانو کښې په دې خبره غور شروع شو چې اوس په څهٔ وزن د افغانستان نه وځو. په دې سلسله کښې د هغوي په مخکښې دوه سوالونه درپيش وو يو

خو دا وهٔ چې آيا انګريزانو له ټول افغانستان په خپل زورر حالت سالم يو حکومت پريښودل پکار دي او کهٔ هغه په وړو وړو حصو کښې تقسيمول مناسب دي. بل سوال دا وهٔ چې د افغانستان حکومت کوم يو داسې بادشاه ته وسپارلے شي چې هغه د فيرنګيانو په منشا چليږي. د هغوي ټول شرطونه په ځان ومني او دومره طاقت هم په ځان کښې لري چې په ملک کښې د خپل حکومت د قائمولو قابل وي. د وړومبي سوال متعلق رابرټس خپل حکومت ته دا رائ پيش کړه چې د افغانستان حکومت دې ټکړې ټکړې شي چې د هغهٔ زورر زور او طاقت بالکل ختم شي. او بيله بيله ټکړه دې جدا جدا حاکم ته وسپارلے شي. دا د انګريزي شهنشاهيت د زړې پاليسي رائ وه. چنانچه لارډ ليټن حکومت هند د رابرټس دې رائ سره اتفاق وکړو او وزير هند ته ئ په اوومه جنوري 1880ء د دې خبرې سفارش وکړو چې د افغانستان حکومت دې ټکړې ټکړې شي. کوم خط و کتابت چې په ذې سلسله کښې د حکومت هند او د رابرټس په منځکښې په دې ورځو کښې شوے وهٔ د هغې نه دا صفا معلوميږي چې دغه وخت د حکومت هند دا رائ وه چې د کابل صوبې نه دې يو بل حکومت جوړ کړې شي او هغه دې يو داسې سردار ته وسپارلے شي چې هغه د خانداني تعلقاتو مقامي اثر او د خپل ملاتړ د زور په سبب د حکومت کولو قابليت په ځان کښې لري. د جنوبي افغانستان په حقله د هغوي دا خيال وهٔ چې دا دې يو جدا حکومت شي او د دې دپاره دې هم د دې صفاتو موصوف يو سړے حاکم مقرر کړې شي د حکومت هند دا منشا او کوشش وهٔ چې په دې تجويز دې هم د لارډ ليټن په عهد حکومت کښې قطعي طور عمل درآمد وشي. ځکه چې په دې ورځو کښې په انګلستان کښې نوي انتخابات بيا شروع شوي وو او د افغانستان په مسئله کښې ازاد خيال پارټي (لبرل پارټي) د لارډ بيکنز فيلډ (يو لوے يهودي النسل فيرنګے وهٔ او د انګريزي حکومت په دې ورځو کښې وزير اعظم او د قدامت پسند طبقي ليډر وهٔ) په حکومت سخته نکته چيني کوله او د هغوي د پاليسي سره ئ اتفاق نهٔ کولو. له دې کبله د لارډ ليټن او د حکومت هند دا منشا وه چې قبل د دې نه چې په نوي انتخاباتو کښې لبرل پارټي برسر اقتدار راشي او هغوي د بيکنز فيلډ د حکومت د پاليسي نه برخلاف طرز عمل اختيار کړي نو چې حکومت هند د وړومبے نه يو دا شان قطعي رويه اختيار کړے وي چې د هغې نه واپس, کيدل بيا د لبرل پارټي دپاره هم ناممکن وي.

اوس رابرټس سمدستي د کابل د صوبې دپاره د يو حاکم د خوښولو په تجويز باندې عمل شروع کړو. وړومبے خو د هغهٔ خيال عبدالرحمٰن خان ته لاړو ولې هغه دا وخت د روسيانو په ملک ترکستان کښې د شير علي خان مرحوم د لاسه شړونکے وهٔ او ډير لرې پروت وهٔ او چونکې لارډ ليټن باندې جلدي وه له دې کبله رابرټس په دې سلسله کښې د ښتننو هم هغه مشرانو سره خط و کتابت شروع کړو چې چا په هغهٔ باندې په تير شوي

دسمبر کښې غزا جوړه کړې وه. د دې مشرانو یوه لویه جرګه د غزني په مقام راغونډه شوه او هغوي بالاتفاق د یو تحریر په ذریعه چې په هغې باندې اویا لویو لویو مشرانو دستخطونه کړي وو رابرټس ته دا تجویز پیش کړو چې یعقوب خان دې بیا د افغانستان امیر شي. رابرټس دا تجویز نامنظور کړو او هغوي ته ئې سوال جواب هم ولیږلو چې د یعقوب خان افغانستان ته واپس راتلل ناممکن دي ځکه چې پخپله د امیرئ نه دست بردار شوے دے او دا فیصله د هغهٔ په هیڅ وجه واپس کیدے نهٔ شي.

په دې اثنا کښې رابرټس ته خبر راغے چې عبدالرحمٰن خان د روسي ترکستان نه راروان شوے دے او بدخشان ته د راتلو په نیت قندوز ته رارسیدلے دے. رابرټس سمدستي دا خبر لارډ لیټن ته ورکړو. د دې نه قریباً دوه هفتې پس د عبدالرحمٰن خان مور چې په قندهار کښې وسیدله سر ډانلډ ته خبر ورکړو چې ایوب خان د یعقوب خان کشر وررور عبدالرحمٰن خان ته یو خط لیکلے وهٔ چې تهٔ ما سره د فیرنګیانو برخلاف په بلخ کښې یو ځاے شه لیکن عبدالرحمٰن خان هغهٔ ته په جواب کښې ولیکل چې زما زړهٔ بالکل دا نهٔ غواړي چې د شیر علي خان ټبر سره هیڅ تعلق وساتم ځکه چې هغوي ماله همیش دوکه راکړې ده او دغه شان فریب ئې ما سره کړے دے لکه چې فیرنګیانو سره ئې کړے دے. زما د فیرنګیانو سره د جنګ کولو اراده بالکل نهٔ ده ځکه چې ماته معلومه ده چې په ما کښې د دې خبرې طاقت بالکل نشته. زهٔ د روسیانو د ملک نه بغیر د هغوي د اجازت نه نهٔ شم درتلې ځکه چې زهٔ د هغوي پنشن خور یم او کهٔ چرې هغوي ماته اجازت هم راکړي نو زهٔ بغیر د فیرنګیانو د بلنې نه نهٔ خو ترکستان ته درتلې شم او نهٔ کابل ته. ولې کهٔ چرې فیرنګیان ما وبلي نو زهٔ به د هغوي د حکم تعمیل وکړم. په اخر کښې هغهٔ ایوب خان ته لیکلي دي چې تهٔ هم د فیرنګیانو اطاعت قبول کړه ځکه چې هغوي سره جنګ کول بې سود دي.

معلومیږي چې دا قسم خبرې اکثر د عبدالرحمٰن خان مور د خپل دماغ نه راویستې وے ځکه چې عبدالرحمٰن خان په خپل ټول تزک کښې نهٔ خو د ایوب خان د دې خط ذکر کړے دے او نهٔ ئې خپلې مور ته د دې قسم جواب لیکلو خط لیږلے دے بلکې د دې برخلاف هغه ځهٔ وخت چې د افغانستان د مصیبتونو نه خبر شو او دا ئې واؤریدل چې افغانستان باندې انګریزانو فوځي قبضه کړې ده نو هغهٔ ته د افغانستان د تاج و تخت د حاصلولو دپاره دا یوه عجیبه موقع ښکاره شوه او هغهٔ سمدستي د روسیانو نه افغانستان ته د واپس کیدو اجازت واخستو او بغیر د فیرنګیانو د اجازت نه افغاني ترکستان ته په دې اراده راروان شو چې کهٔ انګریزان ما په رضا د افغانستان د حکومت اخستو ته پرې نهٔ ږدي نو زهٔ به د هغوي برخلاف جهاد او غزا کوم. بهرصورت فیرنګیانو د افغانستان د صورت حالات پیش نظر دا نهٔ غوښتل چې د عبدالرحمٰن خان د والدې د دې خبرې رښتیا او دروغ معلوم کړي بلکې هغوي دا

غوښتل چې مونږ عبدالرحمٰن خان سره د کابل د حکومت په باره کښې فوراً خط و کتابت شروع کړو لـه دې کبـلـه سر ډانـلډ ستورټ د عبدالرحمٰن خان د دې خط خلاصه حکومت هـنـد تـه واستـولـه او وې ليکل چې د عبدالرحمٰن خان د تېر نيت مونږ ته ښهٔ دے او کهٔ چرې مونږ هغهٔ سره د دې رشته دارانو په ذريعه خط و کتابت شروع کړو نو څهٔ تکليف به نهٔ وي.

هـم پـه دې ورځـو کښې مسـتـر لائل سرکاتب خارجيه کابل ته رابرټس ته ملاقات دپاره راغلو. کپتان ويسټ ريجوے چې بيا کرنل سر ډبليو ريجوے کے سي بي شو د رابرټس پوليټيکل سکتر او مسټر ليپل گرفن چې بيا سر ليپل گرفن شو د کابل سټاف مشر مقرر شو.

د لارډ ليټن دا منشا وه چې د افغانستان د مشکل واقعاتو نه د راوتو دپاره عبدالرحمٰن خـان تـه د کـابـل تخت پيش کول پکار دي چنانچه هغهٔ گرفن ته د هندوستان نه راروانيدو په وخـت کښـې دا خپـلـه رائ ظـهره کړه چې انگريزانو ته د عبدالرحمٰن خان د روغ نيت پته د هـغـهٔ د بـرني خط نه ښه چليږي. په دې سلسله کښې لارډ ليټن سر آليور سينټ جان ته چې د سـر ډانـلـډ ستورټ پوليټيکل افسر وهٔ حکم ورکړو چې فوراً تهٔ عبدالرحمٰن خان سره په دې بـاره کښې د هـغـهٔ د مور په ذريعه خط و کتابت شروع کړه. او دا ټوله معامله دا شان خاطر خـواه فيـصـلـه کـړه چې پـه راتـلـونـکـي ژمـي کښې فيرنگيان د افغانستان د لانجې نه د ځان راخلاصولو قابل شي.

د مـارچ پـه اخـر کـښـې فيرنگيانو له خبر راورسيدو چې عبدالرحمٰن خان خپل ځان د افـغـانـي تـرکـسـتـان مـالک کـړو او اوس هـغـه د کـابل سردارانو سره په خط و کتابت کښې مـصـروف دے لـه دې کبله فيرنگيانو ته دا وخت موزون ښکاره شو چې اوس دې عبدالرحمٰن خان سره په صفا الفاظو کښې د دې تجويز متعلق د خبرو اترو ابتدا وشي چنانچه په اول اپريل مسټر گرفن هغهٔ ته دا شان خط وليکلو (۱):

"دا خبـره مـعلومه شوې ده چې تهٔ په افغانستان کښې داخل شوے ئې او په دې وجه دا خط تاته د يـو اعتباري قاصد په لاس درليږلے شي. د دې دپاره چې کهٔ چرې تهٔ غواړې چې زهٔ حکومت برطانيه ته په افغانستان کښې د خپلې داخلې د مدعا متعلق څهٔ تحرير وليږم نو چې تهٔ په کابل کښې انگريزي افسرانو ته دا قسم تحرير وليږے".

---

(۱) (عبدالرحمٰن خان په خپل تزک کښې د دې خط د راتلو متعلق دا شان ليکلي دي. "په بله ورځ هـر کـلـه چې ما په قندوز کښې د توپخانې ملاحظه کوله نو زهٔ د يوسرږ په راوړاندې کيدو ډير حيران شوم هـغـهٔ مـاتـه ورومبے سلام وکړو او بيا زما په پښو پريوتو ما هغه راپاڅولو او چې ورته مې وکتل نو هغه ناظر مـحـمـد سـرور د نـاظر حيدر زوے وهٔ چې د سمر قند نه زما نه تښتيدلے وهٔ. ورومبے خو هغهٔ ډيره پښيماني ښکاره کړه ولې هر کله چې ما هغهٔ ته ووئيل چې ما بخښلے ئې نو هغهٔ ماته ووئيل چې ما د کابل نه تا دپاره يو

د دې په جواب کښې عبدالرحمٰن خان په پنځلسم اپریل دا خط ولیکلو :

" په دې نیک ساعت کښې ستا د مهربانۍ خط ماته راورسیدو تا زما نه از روئے انصاف د دوستۍ تپوس کړے دے چې افغانستان ته په راتلو کښې ستا څۀ غرض دے؟ زما معزز دوسته، د برطانیه عظمیٰ افسرانو ته دا ښۀ علم دے چې په دې وروستنو دولسو کالو کښې چې زۀ د شهنشهاه روس په ملک کښې شړونکے وم نو زما شپه او ورځ دا خواهش وۀ چې زۀ دې بیا خپل وطن ته لاړ شم. هرکله چې مرحوم شیر علي خان وفات شو او زمونږ په قبیلو باندې هیڅوک د حکومت کولو پاتې نۀ شو نو هغه وخت زما د افغانستان ته د راتلو خیال پیدا شو مګر زما به قسمت نۀ وۀ او زۀ بیا تاشقند ته لاړم. د دې نه پس چونکې امیر یعقوب خان سره ستاسو فیصله وشوه نو هغه د افغانستان امیر شو ولې بیا چې هغۀ تاسو پریښودئ نو هغۀ د تولو غرضي خلقو خبرو ته غوږ کیښودو او بیوقوفانو کسانو له ئې اختیارات ورکړل. تر دې چې د افغانستان د حکومت نظام د جاهلو کسانو په لاس ورغلو او کوم حکومت چې زما د نیکۀ په عهد سلطنت کښې دا شان په اعلیٰ پیمانه چلیدلے وۀ چې د شپې نه رڼا ورځ جوړه شوې وه هغه د نورو بادشاهانو په مخکښې سپک او تباه شو. حالانکې زما د نیکۀ اتلس زامن وو. اوس تۀ زما نه زما د خواهشاتو او توقعاتو تپوس کوے نو هغه دا دي :

---

یو خط راوړے دے. زۀ خپلې خیمې ته واپس راغلم او بیا هغۀ ماته ووئیل چې دا وخت زۀ د انګریزي ریزیډنټ د قاصد په حیثیت راغلے یم او په هندوکش باندې راتیر شوے یم چې هلته یخني ډیره سخته وه او واؤره د سرې تر زنګنونو پورې رسیده. ما هغه خط پرانستو د هغې مضمون حسب ذیل وۀ :

مهربان من سردار عالي عبدالرحمٰن خان

ستا د دوست مستر ګرفن د طرف نه د سلامونو او ستا د خیریت د غوښتو نه پس زۀ ستا د اطلاع دپاره دا لیکم چې حکومت برطانیه په دې اوریدو خوشحاله شوے دے چې تۀ صحیح سلامت قطغن ته ورسیدے. هغوي به ډیر خوشحاله شي کۀ چرې تۀ هغوي ته دا ووایې چې تۀ د روس نه څرنګ راغلے او ستا ارادې او تجویزونه څۀ دي؟

ما دا خط خپل فوځ ته په وچت اواز واؤرولو ځکه چې حکومت برطانیه سره زما د تعلقاتو دا ابتدا وه او ما دا مناسب وګنړل چې زۀ د خپل فوځ د صلاح نه بغیر د دې خط جواب ورکړم. زۀ د وران کارو خلقو نه هم ویریدم چې هسې نه چې هغوي دا ووائي چې عبدالرحمٰن خان زمونږ ملک فیرنګیانو ته حواله کوي نو په دې به زۀ تباه شوے وم."

د دې خط مضمون د هغې خط نه بالکل جدا دے چې کوم مونږ په متن کښې درج کړے دے د متن خط ما د رابرټس د کتاب Forty one years in India نه نقل کړے دے.)

چې تر کومه پورې ستاسو او د روس سلطنتونه موجود دي نو زما د قوم خلقو او د افغانستان نورو قبائلو له پکار دي چې هغوي چپ چاپ په ارام او په امن کښې وسيږي. او پکار دي چې مونږ د دې دوارو سلطنتونو رښتوني او وفادار ملګري شو او مونږ د هغوي دواړوتر منځه په امن کښې وسيږو. ځکه چې زمونږ د قام خلق د لويو لويو سلطنتونو د مقابلې نۀ دي او د تجارت د عدم موجودګۍ په سبب تباه شوي دي او زمونږ ستاسو د دوستۍ نه دا اميد کيږي چې تاسو به د افغانستان خلقو سره همدردي او امداد وکړئ.او هغوي به د دواړو حکومتونو د حفاظت د لاندې وساتئ . په دې باندې به ستاسو د دواړو نوم وشي او د افغانستان خلقو ته به امن، سکون او خلق الله ته به ارام حاصل شي. دا زما خواهش دے نوره مخکښې ستاسو رضا ده."(۱)

---

(۱) (دا خط مونږ د جنرل رابرټس د کتاب Forty one years in India "په هندوستان کښې زما د يوځلويښت کالو سرګزشت" نه نقل کړے دے. ولې امير عبدالرحمٰن خان په خپل سرګزشت کښې د دې جواب مضمون په دې الفاظو کښې ليکلے دے. په خدمت کښې زما د دوست عالي ګرفن صاحب نمائنده برطانيه عظمیٰ. د راقم الحروف سردار عبدالرحمٰن خان د طرف نه دې تاته سلامونه وي. زۀ ستا د مهربانۍ د خط په رارسيدو خوشحاله شوم چې په هغې کښې تا زما قطغن ته په سلامتۍ د رارسيدو د خپلې خوشحالۍ اظهار کړے دے. تا چې ما نه تپوس کړے دے چې تۀ د روس نه څرنګ راغلے ئ نو زۀ د روسي حکومت او د هغۀ د وائسرائے جنرل کافمين په اجازت راغلے يم. زما د دې راتلو غرض صرف يو دے او هغه دا دے چې زۀ خپل قوم له د هغوي د مصيبت او پريشانۍ په ساعت کښې امداد ورکړم، والسلام.

عبدالرحمٰن خان په خپل سرګزشت کښې وړاندې وائي چې ما دا جواب خپل فوځ ته په وچت اواز ولوستو او د هغوي نه مې تپوس وکړو چې دا جواب ستاسو خوښ دے. هغوي په جواب کښې ووئيل چې مونږ د خپل دين او ملک دپاره ستا د کمان لاندې جنګ کولو ته تيار يو ولې بادشاهانو سره د خط و کتابت کولو چل مونږ له نۀ راځي. د خدائے پاک او د هغۀ د رسول په نوم بيا هغوي ما له پوره اختيار راکړو چې څرنګ تاته مناسب ښکاري هغه شان جواب وليکه بيا هغوي د "يا چار يار" وچتې نعرې بلندې کړې او وې وئيل چې دا کوم خط تا ليکلے دے دا بالکل درست جواب دے او زمونږ د ټولو دې سره اتفاق دے.

هر کله چې هغوي زما خط خوښ کړو نو بيا ما هغه ناظر محمد سرور خان له ورکړو او هغه د څلورو ورځو د ارام نه پس د قندوز نه کابل ته رخصت شو. زۀ بيا ورو ورو چريکار طرف ته وړاندې شوم. دې سره سم ما د کابل انګريزي افسرانو ته زباني پيغام واستولو چې تاسو سره د ټولو معاملاتو د تصفيې دپاره چاريکار ته درروان يم. په ديرشم اپريل ګرفن صاحب يو بل خط راواستولو چې تۀ کابل ته د راتلو کوشش وکړه او د افغان حکومت واګې سنبال کړه ما په شپاړسم مئ د دې خط جواب داسې وليکلو :

زما قابل قدر دوسته، زما وړومبے هم د حکومت برطانيه نه ډير اميدونه وو او اوس هم شته او ستا د دوستۍ نه دا ثابتيده چې زما اميدونه په ځائے دي او درست دي. تاته د افغانستان د خلقو عادتونه ښۀ معلوم دي د يو سړي خبره هيڅ کار نۀ شي کولے تر څو پورې چې هغوي ته دا ثابته نۀ شي چې زۀ د هغوي د

د عبدالرحمٰن خان د دې خط نه فیرنګیانو دا نتیجه وښکله چې عبدالرحمٰن خان ځان هم د فیرنګیانو او د روسیانو حفاظت ته سپارل غواړي. چنانچه حکومت هند مستر ګرفن ته هدایات راواستول چې تهٔ فوراً عبدالرحمٰن خان په دې خبره پوهه کړه چې د افغانستان بیروني تعلقاتو سره چې تر کومه پورې د روس او د انګریزانو تعلق دے نو هغه انګریزان تا سره زیر بحث راوستل نهٔ غواړي.

---

خبره کوم. ولې قبل د دې نه چې خلق ما له کابل ته د تلو اجازت راکړي هغوي د مفصله ذیل سوالونو جوابونه تاسو نه معلومول غواړي. د هغوي سوالات حسب ذیل دي: (۱) زما د مملکت حدود به څهٔ وي؟ (۲) آیا قندهار به په هغې شامل وي؟ (۳) آیا څوک یورپین سفیر یا انګریزي فوځ به په افغانستان کښې دیره کیږي؟ (۴) زما نه به د حکومت برطانیه د کوم کوم دشمن د مقابلې توقع کیږي؟ (۵) حکومت برطانیه به ماله او زما ملک له د کومو کومو فوائدو د راکولو وعده کوي؟ (۶) او زما نه به هغوي د دې فوائدو په عوض کښې څهٔ څهٔ خدمت غواړي؟

د دې جوابونه به زهٔ د هغوي په مخکښې ږدم او د هغوي صلاح به زهٔ د یوې داسې معاهدې په شرطونو اقرار وکړم کوم چې زهٔ منظورولے شم او هغه پوره کولے شم. زهٔ ستاسو د عزت دپاره د خدایے پاک نه دا توقع لرم چې زهٔ او زما قوم به دواړه په شریکه یوه ورځ ستاسو خدمت وکړو اګرچې حکومت برطانیه ته د دې هیڅ حاجت نشته ولې په دنیا کښې کله کله داشان موقع هم پیښیږي."

په څوارلسم جون ګرفن د دې سوالاتو جواب عبدالرحمٰن خان له حسب ذیل ورکړو:

پس د سلامونو نه ماته حکم شوے دے چې د کومو سوالاتو تا جواب غوښتے دے زهٔ د حکومت هند جوابونه دهغې باره کښې تاته درولیږم. اولاً په دې باره کښې چې د کابل فرمانروا به بیروني حکومتونو سره تعلقات ساتلے شي او که نه؟ چونکې حکومت برطانیه د یو بیروني حکومت هم دا حق نهٔ مني چې هغوي د افغانستان په معاملاتو کښې دخل ورکړي او چونکې روس او ایران دواړو دا اقرار کړے دے چې هغوي به د افغانستان په معاملاتو کښې هیڅ سیاسي دخل نهٔ ورکوي له دې کبله دا خبره واضحه ده چې د کابل فرمانروا بغیر د انګریزانو نه بل یو بیروني حکومت سره هم سیاسي تعلقات نشي ساتلے. او کهٔ چرې چا بیروني طاقت په افغانستان کښې د دخل ورکولو تکل وکړو او د دې مداخلت نتیجه دا راووته چې د کابل فرمانروا باندې بلا وجه څوک وګوابنیدلو نو حکومت برطانیه به د دې حملې د مدافعت دپاره بشرط ضرورت هغهٔ له امداد ورکولو ته تیار وي. ولې شرط دا دے چې د کابل فرمانروا به د خپلو بیروني تعلقاتو باره کښې د حکومت برطانیه په مشوره چلیږي. ثانیاً ستا د مملکت دحدودو باره کښې ماته ددې خبرې د وینا حکم شوے دے چې د قندهار ټوله صوبه د یو بل فرمانروا لاندې کړې شوې ده ماسوایٔ د پشین او دسبي نه چې هغه به د انګریزانو په قبضه کښې وي. په دې وجوهاتو حکومت دې ته تیار نهٔ دے چې په دې نکتو سره ګفت وشنید وکړي. او نهٔ دې ته تیار دے چې د خپل حکومت د شمال مغربي حدوداتو متعلق په هغې فیصلو بیا تا سره خبرې اترې وکړي چې کومې د هغوي او د سابق امیر یعقوب خان په منځکښې طے شوي دي. په اثنا د دې دوؤ خبرو حکومت برطانیه په دې رضا دے چې تهٔ په ټول افغانستان باندې (پشمول هرات) ولې د هغې د قبضې درکولو به مونږ ذمه وار نهٔ یو. اګر چې حکومت به

پــه نورو الفاظو کښې د وائسراے هند دا منشا وه چې عبد الرحمٰن خان دې سمدستي فيـرنـگيـان خبـردار کـړي چـې د افـغـانسـتـان د بيروني تعلقاتو متعلق افغانستان ته هډو دا حق حاصل نۀ دے چې هغوي انګريزانو سره په دې بحث وکړي ځکه چې د دې تعلق صرف روس او انـګـريزانو سره دے. او چونکې د زار روس حکومت هميش دا اصول تسليم کړي دي چې هـغـوي بـه د افـغـانسـتـان پـه مـعاملاتو کښې هيڅ قسمه دخل نۀ ورکوي له دې کبله حکومت بـرطانيه د دې خبرې منلو ته تيار نۀ دے چې افغانستان دې بل يو بيروني حکومت سره هم ځان له سياسي تعلقات قائم کړي.

عبـد الـرحـمٰـن خـان سـره خـط و کـتـابـت کـولو سره سم فيرنګيانو د افغانستان نورو مشرانو سره هم خبرې اترې د افغانستان د تاج و تخت متعلق بدستور جاري وساتلې. د دې نه څـۀ مـوده وروميـے د جنورۍ په مياشت کښې رابرټس مستوفي حبيب الله خان غزني ته د دې غرض دپاره استولے وۀ چې هغه د غلجو او د لوګر مشرانو سره جرګه وکړي او هغوي د کابل د حکومت سنبالولو دپاره ځان له يو فرمانروا منتخب کړي. چونکې مستوفي حبيب الله خان د شيـر عـلـي خـان او د يـعـقـوب خان د ډلې ملګرے وۀ او د دسمبر د جنګ ازادۍ بنا هم دغې خـلـقو کړې وه چې څوک د يعقوب خان ملګري وو د دې دپاره رابرټس د مستوفي په ذريعه د دې مشـرانـو نه تپوس کول ضروري وګڼل. مستوفي د ماه اپريل په ابتدا کښې واپس راغلو او ځان سره ئې د دې مشرانو يو څو نمائنده ګان سره د يو تحرير راوستل چې په هغې د محمد جان خان او د دولسو سردارانو او يو سل نهۀ اتيا ملکانو دستخطونه وو. په دې تحرير کښې

---

ستـا پـه لاره کـښـې پـه هـغـې باندې قبضه کولو دپاره هيڅ مشکلات نۀ پيدا کوي هم دومره مکمل او وسيع تسـلـط ځـان لـه پيدا کړې څومره چې ستا د خاندان يو بل امير ځان له پيدا کړے وۀ. حکوت برطانيه دا نۀ غـواړي چـې هـغـوي پـه دې حـدودو کـښې دننه په معاملاتو کښې هيڅ قسم دخل ورکړي او نۀ به د تا نه دا مـطـالـبـه کـيـږي چې تـۀ پـه خپل حکومت کښې انګريزي ريزيډنټ ديره کيدو ته پريږده. اګرچې معمولي دوسـتـانـه آمدورفت د سهولت دپاره لکه څرنګ په دوؤ ګاونډي حکومتونو کښې لازمي وي به دا مناسب وي چې په اتفاق سره د حکومت برطانيه يو مسلمان ايجنټ په کابل کښې مقرر شي.

(سرګزشت امير عبدالرحمٰن خان جلد اول صفحه 195-194 مرتبه مير منشي سلطان محمد خان)

اميـر عبدالرحمٰن خان د دې نه وړاندې وائي چې ما د دې خط يو مختصر جواب په دويشتم جون وليـکـلـو ولې ما په هغې کښې په دې خبره رضامندګي ظاهره نۀ کړه چې قندهار دې زما د حکومت نه جدا شـي ځـکـه چې قندهار د شاهي خاندان ښار وۀ او د دې ښار د شاملولو نه بغير به زما حکومت د هيڅ کار نۀ وۀ. بيـامـا په خداے تعالیٰ توکل وکړو او د کوهستان نه په چاريکار کښې ورداخل شوم. انګريزي فوځ چې ما سره د غازيانو دومره لوے جمعيت نه خبر شو نو ناقلاره شو. د کوهستان کابل ټول مشران او نور کسان چـې د انـګـريزانو برخلاف به ئې جنګونه کول، ما سره شامليدل او زما نه به ئې بيعت کولو، او کوم خلق چې پنځپله راتلے نۀ شول هغوي ما سره د خط و کتابت په ذريعه خبرې اترې کولے.

کښې هغوي خپل ټول تجويزونه او خيالات ظاهر کړي وو ولې چونکې په دې هر يو تجويز کښې د يعقوب خان د اميرۍ سفارش شوے وۀ له دې کبله رابرټس په دې تجاويزو غور ونۀ کړو. لا دا نمائنده ګان په کيمپ کښې موجود وو چې رابرټس ته دا خيال پيدا شو چې د فيرنګيانو او د افغانستان د خلقو په منځکښې د مزيد غلط فهمو د لرې کولو دپاره حکومت برطانيه له د خپل آئنده طرز عمل متعلق يوعام اعلان کول پکار دي ګني نو ممکن ده چې هغوي بيا د فيرنګيانو برخلاف يو جمعيت جوړ کړي او هغوي به حمله وکړي. په دې غرض هغۀ په ديارلسم اپريل يو دربار وکړو چې په هغې کښې د لوګر او د غزني د طرف نمائنده ګان د کابل سرداران او د هزاره قبيلې څۀ خلق مدعو شول. مسټر ګرفن د حکومت هند د طرف نه په دې دربار کښې دا اعلان وکړو چې انګريزان دا نۀ غواړي چې افغانستان لاندې کړي يا په افغانستان کښې په څۀ ځاے باندې قبضه وکړي ماسوائ د هغه ځايونو نه چې کوم د هندوستان د سرحد د حفاظت دپاره ضروري وي. هغۀ دا هم هغوي ته ووئيل چې د يعقوب خاَن افغانستان ته واپس راتلل ناممکن دي مګر بل هر سردار چې تاسو خوښ کړئ نو هغه به ستاسو امير مقرر شي. په اخر کښې هغۀ د دې خبرې اعلان هم وکړو چې څۀ وخت د افغانستان خلق بل يو امير ځان له منتخب کړي او په ملک کښې امن قائم شي نو فيرنګيان به خپل فوځونه د افغانستان نه واپس بوځي ولې قندهار به بيا د کابل صوبې سره نۀ شامليږي.

وړومبے د دې نه ذکر شوے دے چې په شمالي او وسط افغانستان کښې د سختې بدامنۍ په سبب او ځاے په ځاے د انګريزانو په مخالفت کښې د خلقو د راپاڅيدو په وجه سر ډانلډ سټيورټ ته حکم شوے وۀ چې تۀ سره د يو ډويژن فوځه چې په هغې کښې اووۀ اتۀ زره ځوانان شامل وو د قندهار نه کابل ته روان شه او په لاره په ټوله علاقه کښې امن قائم کړه. يعنې انګريزي تسلط په خلقو باندې کښېنوه. چنانچه هغۀ په ديرشم مارچ د قندهار نه راروان شو او لفټيننټ جنرل پرائمروز ته ئ د قندهار د بل ډويژن فوځ کمان حواله کړو. په شپاړسم اپريل رابرټس له کابل ته د سټيورټ يو خط راغلو چې ما سره خوراک کم شوے دے دې دپاره ماله د خوردونوش سامان مخې له راوليږه. رابرټس فوراً ميجر راس سره د دې سامان او د فوځ د يوې دستې روان کړو. چونکې رابرټس سره دا ويره وه چې د راس په دې دسته باندې د لوګر خلق حمله ونه کړي هغۀ دولس سوه ځوانان د کرنل جينکنز د لاندې د چار آسيا په طرف واستول شپږ ورځې پس يعنې په دويشتم اپريل راس سرټوپ نومے يو ځاے ته چې د غزني نه يو شلويښت ميله کابل طرف ته دے ورسيدو.

د افغانستان د قوم پرست طبقې دا دستور وۀ چې هغوي به د فيرنګيانو د ټنګولو او هغوي سره د جګړې کولو يوه موقعه هم د لاسه نۀ غورځوله او هميشه به ئ هغوي سره د ګوريلا په طريقه جنګي مقابلې کولے. چنانچه د سټيورټ فوځ هم غازيانو په لاره باندې په

قلاره پرې نهٔ ښودو. هر کله چې دا فوځ د قندهار نه راووتو نو د زمیندارو د درانو او د غلجو د مجاهدینو یو مضبوط لښکر دې فوځ سره سم په بله لار د هغوې ښي ډډې ته په یو څو میله فاصله راروان شو او په ټوله لار ورسره برابر راتلو او په سټورټ باندې ئې د حملې کولو دپاره یو مناسب ځاے او موقع لټوله. په نولسم اپریل د سټورټ فوځ احمد خیل نومے یو مقام ته راورسیدو چې د هغې د لارې دواړو طرفونو ته وړې وړې غونډۍ پرتې وے او بیا لږ وړاندې لار هم د دې غونډو د پاسه تلې وه. پښتنو مجاهدینو دا مقام د سټورټ فوځ سره د جګړې دپاره خوښ کړو او د لارې دواړه طرفه او مخامخ غونډو باندې هغوي ته کښیناستل. انګریزي فوځ په دې لښکر باندې د مخامخ نه حمله شروع کړه او پنځلس سوه ګزه کښې ئې ورته دولس توپې کښیښنودې. مجاهدینو سره صرف دوه توپې وے. د انګریزي فوځ عظیم الشان طاقت مد نظر د سټورت هیچرې دا طمع نهٔ وه چې غازیان به د دې دومره توپو د ګوله باری باوجود په انګریزي فوځ باندې د چپاؤ کولو جرأت وکړي. ولې انګریزي توپخانې لا په مشکله ډزې شروع کړے وے چې مجاهدینو په ډیرې ځوانمردۍ او په زبردست جوش سره د غونډو نه لکه د زمرو په شان راودانګل او په انګریزي فوځ دا شان راپریوتل چې د یو سر نه تر بله سره پورې د هغوي نه چاپیره شول. د غازیانو رسالې د انګریزي فوځ په چپ او په عقب باندې داسې زوروره حمله وکړه چې نهٔ خو د هغوي توپو او د هغوي پیادوؤ باړونو د غازیانو پیش قدمي رامنع کړه او دندوکار ئې پرې جوړ کړو. دغه وخت د انګریزي فوځ حالت ډیر خطرناک شو او اخر هغوي په راوروستو کیدو او نوې مورچو ته په راتلو مجبور شول. په دې کښې سټورت نور تازه دم فوځ رامخکښې کړو او انګریزي توپو هم د دې نوؤ مورچو نه د غازیانو په ګڼو ګڼو ټولو باندې یو قتل عام جوړ کړو. بیشانه ډیر غازیان شهیدان شول. ولې فیرنګیانو د هغوي جانبازۍ او بهادرۍ ته ګوتې په خلهٔ کښې ونیولې ځکه چې بغیر د دوؤ کسانو نه په دې لښکر کښې یو کس هم داسې نهٔ وۀ چې د خپل ځان د بچ کولو کوشش ئې کړې وے بلکې لکه د پتنګانو په شان هغوي خپل ځانونه د انګریزي فوځ په ټوپکو او توپو ورواچول. اخر کار غازیانو میدان پریښودو او قبلې طرف ته په غونډو کښې غائب شول. انګریزانو ته هم دا جرأت ونهٔ شو چې د هغوي تعاقب وکړي. لفټیننټ هملټن د انګریزي توپخانې یو افسر چې په دې جنګ کښې پخپله موجود وۀ هغهٔ د غازیانو د بهادرۍ متعلق په خپل یو خط کښې دا شان لیکلي دي:

" ما صرف دوه افغانان ولیدل چې د سر امن ئې غوښتې وۀ او سرے د دې غازیانو د بې پروا بهادرۍ تعریف کولو نه بغیر پاتې کیدے نهٔ شي. او په کومه طریقه او ترتیب چې هغوي راوړاندې کیدل نو پکار وو چې هغوي کامیابي حاصله کړے وے."

حقیقت دا دے چې انګریزي جرنیل صرف د اعلیٰ وسلې او د ډیرو توپو په سبب په

دې مجاهدینو کامیابي حاصله کړه ګني نو د هغوي په بهادرۍ او جانثارۍ کښې هيڅ کمے نۀ وۀ.

ستهورټ د احمد خيلو نه غزني ته راروان شو او په دويشتم اپريل هغه ځاے ته راورسيدو. په دې ځاے کښې هم هغه غازيانو هغۀ ته ارام ور نۀ کړو او د هغۀ د تنګولو دپاره ئې په هغۀ حملې وکړې ولې څۀ خاص کاميابي ئې حاصله نۀ کړه. په غزني کښې ستهورټ ته حکم وشو چې کابل ته راروان شه او په هغه ځاے د افغانستان د انګريزي فوځ کمان واخله.

وړومبے د دې نه ذکر شوے دے چې رابرټس د ستهورټ د وينا مطابق څۀ خرڅ خوراک د ميجر جنرل راس دحفاظت د لاندې د ستهورټ مخې له ليږلے وۀ او چونکې هغۀ سره خوف وۀ چې د لوګر خلق به په راس باندې حمله وکړي نو هغۀ کرنل جينکنز دولس سوۀ ځوانانو سره د چار آسيا کلي ته وليږلو چې د لوګر په خلقو رعب پريوځي. دې سره سم هر کله چې هغۀ ته خبر راورسيدو چې فيرنګيانو د احمد خيلو په جنګ کښې کامیابي کړې ده نو هغۀ په لوګريانو باندې د اثر اچولو دپاره د دې فتحې په خوشحالۍ کښې د توپو سلامي وکړه چې خلق خبر شي او په هغوي سهم پريوځي. ولې د دې مظاهرې په پښتنو غازيانو هيڅ اثر ونۀ شو او په څليريشتم اپريل جينکنز ته خبر وشو چې لوګريان په ما باندې د محمد حسن خان په سالارۍ کښې چپاؤ کولو ته تياري کوي. جينکنز فوراً خپل سامان او سپاهيان يو محفوظ مقام ته بوتلل او رابرټس ته ئې د راتلونکي خطرې خبر ورکړو. رابرټس فوراً بريګيډير جنرل ميکفرسن د جينکنز امداد له روان کړو. او هغۀ سره ئې شپږ توپې څۀ رساله او يو زر پياده ځوانان واستول. د ميکفرسن د رخصتيدو نه پس رابرټس بريګيډير جنرل هيوج ګف سره د رسالې د بريګيډه او څلور سوه د اسونو د توپو په دې غرض واستولو چې هغه د کابل ښار او د چار آسيا کلي په نيمه لار کښې مورچه ونيسي او په دې طريقه د ميکفرسن ملا نوره هم مضبوطه کړي.

په پنځويشتم اپريل ميکفرسن قريباً يوه بجه د ورځې د سنبګ نوشته د آبدرې په خوا کښې په يو وچت مقام ورسيدو او وې ليدل چې د جينکنز او د غازيانو په منځکښې ښه مضبوطه جګړه روانه ده. او جينکنز د بچاؤ په جنګ کښې راګير شوے دے او غازيان د نصف دائرې په شکل کښې د هغۀ نه راتاؤ شوي دي. ميکفرسن د غازيانو په چپ طرف د توپو سخته ګوله باري شروع کړه او دغه شان هغوي د دوۀ فوځونو په منځکښې راګير شول. د څلورو بجو پورې ښۀ جنګ وشو مګر د انګريزي فوځ توپو د غازيانو ډير لوے نقصان وکړو او اخر هغوي وتښتيدل. په دې دوران کښې رابرټس پخپله هم د جنګ موقعې له راورسيدو ولې جنګ بيا ختم شوے وۀ او ټول انګريزي فوځ واپس کابل ته راغلو.

د دې نه پس څۀ قابل ذکر واقعه فيرنګيانو ته پيښه نۀ شوه او سر ډانلډ ستهورټ په

پنځم مئ کابل ته راورسیدو. چونکې سټورټ په عهده کښې د رابرټس نه مشر وۀ په دې وجه د ټول افغانستان د انګریزي فوځونو چارج هغۀ د رابرټس نه واخستو. هم په دغه ورځ کابل ته خبر راورسیدو چې د یهودي النسل لارډ بیکنز فیلډ قدامت پسنده حکومت د انګلستان په نوي انتخاباتو کښې شکست وخوړو او د هغوي په ځاے ازاد خیالو حکومت د مسټر ګلیډسټون د مشرۍ لاندې قائم شو او په دې وجه هغې زبردست رجعت پسند وائسراے هند لارډ لیټن چې چا د خپل عهد حکومت د ابتدا نه تر دې وخته پورې د پښتنو په یو ازاد حکومت باندې پرله پسې د مصیبتونو یوه ړلۍ وروليې وه استعفيٰ ورکړه. او د هغۀ په ځاے لارډ رپن وائسراے مقرر شو او دغه شان وزیر هند هم د ازاد خیال طبقې یو انګریز لارډ هارټنګټن مقرر شو. په دې نوي حکومت او د نوي وائسراے په تقررۍ باندې د هندوستان د مقامي انګریزي فوځي او سول افسرانو طبع ډیره خړه شوه ځکه چې د ازاد خیال طبقې خیالات د قدامت پسند طبقې په مقابله کښې په افغانستان کښې د فارورډ پالیسي برخلاف وو. او هغوي دا نۀ غوښتل چې د افغانستان په معاملاتو کښې دې فیرنګیان دومره مداخلت وکړې چې هغه ټکړې ټکړې شي او د هغۀ سیاسي حیثیت دې د هندوستان د یو ریاست درجې ته راپریوځي. رابرټس هم منجمله د دغه فوځي افسرانو نه وۀ چې هغوي دا غوښتل چې افغانستان دې همیش د فیرنګیانو د لاندې وي. او د هغۀ طاقت دې دومره کمزورے شي چې بیا چرې په هغۀ کښې د انګریزانو برخلاف د سر وچتولو یا د هغوي د احکامو د نۀ منلو جرأت پیدا نۀ شي. چنانچه د فیرنګیانو دې ټولي په حکومت هند او حکومت هند په برطانیه دومره اثر واچولو چې هم لارډ سالسبري چې د بیکنز فیلډ په حکومت کښې وزیر هند وۀ او هم لارډ لیټن وائسراے هند دا فیصله وکړه چې د قندهار صوبې دې مستقل طور د کابل د صوبې نه جدا شي او والي شیر علي خان دې د هغې حاکم شي. چنانچه حکومت هند هغه فوراً هم په دې ورځو کښې د قندهار والي تسلیم کړو او د دې خبرې اعلان ئ هم په ټول افغانستان کښې وکړو. دا شیر علي د امیر یعقوب خان په عهد حکومت کښې د هغۀ د طرف نه د قندهار ګورنر مقرر شوے وۀ. لیکن هرکله چې د کمناري د قتل نه پس انګریزانو د هغۀ د انتقام اخستو دپاره په افغانستان دوباره حمله وکړه او سر ډانلډ سټورټ په قندهار باندې قابض شو نو دې شیر علي سر ډانلډ سټورټ سره د قندهار په صوبه کښې د انګریزي اقتدار په قائمولو کښې پوره پوره تعاون وکړو. دا هم د دې خدماتو صله وه چې انګریزانو هغه د قندهار جدا او یو مستقل فرمانروا تسلیم کړو.

د هرات د صوبې متعلق د حکومت برطانیه محکمۀ خارجیه د دسمبر 1879ء د ایران د مطالبې مطابق دا فیصله وکړه چې دا دې ایران ته حواله شي بشرطیکه د فوځي ضروریاتو مطابق هرکله چې انګریزان وغواړي نو هغوي ته به په دې ښار باندې هر وخت د فوځي قبضې

کولو حق حاصل وي او د دې غرض دپاره د هرات د قلا په محافظ فوځ کښې به يو څو انګريزي افسران مستقل طور ملازمان وي. په فروري 1880ء کښې شاه ايران د روسيانو په لمسه د انګريزانو مذکوره بالا شرطونه نامنظور کړل او مطالبه ئ وکړه چې هرات دې ايران ته غير مشروط او مستقل طور حواله شي. چونکې حکومت هند د ابتدا نه د دې تجويز برخلاف وۀ چې هرات دې ايران ته حواله شي ځکه چې د هغوي دا خيال وۀ چې يو خو به د افغانستان ټول پښتانۀ په دې سخت ناراض شي چې د افغانستان صوبه غير پښتون قوم ته حواله شوه بله دا چې د روس اثر به عين د هندوستان تر حده پورې راورسي او اوس چې ايران د حکومت برطانيه پيش کړي شرطونه هم تسليم نۀ کړل نو په دې وجوهاتو حکومت برطانيه د هرات متعلق دا ټول تجويز په معرض التوا کښې پريښودو.

د افغانستان او سيستان متعلق هم د يهودي بيکنز فيلډ حکومت دا فيصله کړې وه چې دا هم ايران ته حواله کول پکار دي ولې د هرات معاملې سره دا معامله هم پاتې شوه. رابرټس او د هغۀ همخيال فوځي او سول انګريزي افسرانو سره د ازاد خيال پارټۍ د برسراقتدار کيدو په وجه دا ويره پيدا شوه چې د حکومت هند دا پاليسي چې افغانستان دې ټکړې ټکړې شي او بيله بيله ټکره دې د بيل بيل فرمانروا د لاندې د انګريزانو د اثر ماتحت شي بالکل بدله شي په دې وجه هغوي د نوي حکومت په راتلو ډير دلګير وو خاص طور سره رابرټس د لارډ ليټن په تلو باندې ډير غمژن وۀ ځکه چې هغۀ سره د رابرټس غير معمولي خوارۀ تعلقات وو او د رابرټس په هغۀ باندې ډير اثر وۀ او لارډ ليټن هم په هغۀ باندې بې اندازې اعتبار کولو.

د قندهار نه د سټورټ په راغوښتو کښې د حکومت هند دا مدعا وه چې هغه به په کابل او په غزني باندې فوځي قبضه وکړي او دغه علاقه به په قبضه کښې وساتي او بيا به رابرټس د کوهستان او د باميان په طرف پيش قدمي وکړي او جنرل برائټ به د غلجو برخلاف فوځي کارروائي شروع کړي. او دې سره سم به د کرمې د طرف نه د فوځ يوه دسته د شترګردن په لاره کابل ته لاړه شي. او په دې طريقه به د افغانستان د نمرخاتۀ نه تر قبلې پورې او د قطب نه تر سهيل پورې په ټولو خلقو باندې د انګريزانو اقتدار او سکه کښيښنوي. ولې په دې منځکښې عبدالرحمٰن خان چې د دولسو ديارلسو کالو نه د روس په علاقه کښې د امير شير علي خان مرحوم د لاسه شړونکے وۀ د افغاني ترکستان په لاره پدري وطن ته په دې غرض راورسيدو چې هلته بيا د پښتنو حکومت قائم کړي. چنانچه په مارچ 1880ء کښې هغۀ د افغانستان عام خلقو ته د فيرنګيانو برخلاف د جهاد کولو دپاره د خپلې جنډې د لاندې د راجمع کيدو او د افغانستان د ازادولو دعوت ورکړو او دغه شان د فيرنګيانو په مذکوره بالا تجويز باندې عمل کول پاتې شو.

وروسته د دې نه ذکر شوې دې چې عبدالرحمن خان ته فیرنګیانو د اپریل په ابتدا کښې د کابل تاج و تخت پیش کړو ولې دې سره هغوي دا هم غوښتل چې هغه زمونږ شرطونه په ځان باندې تسلیم کړي. په دې شرطونو کښې یو شرط خو دا وۀ چې د کابل فرمانروا به بل هیڅ بیروني حکومت سره سیاسي تعلقات نۀ ساتي دویم دا وۀ چې د قندهار صوبه به د کابل د صوبې نه بالکل جدا وي او هغه به د یو بیل فرمانروا د لاندې وي دریم شرط دا وۀ چې کومې کومې علاقې د ګندمک د عهدنامې په رُو سره امیر یعقوب خان انګریزانو ته حواله کړي دي د هغې د واپسی مطالبه به هم عبدالرحمن خان نۀ کوي. چونکې یو طرف ته نۀ خو عبدالرحمن خان دا غوښتل چې زۀ د فیرنګیانو دا شرطونه بې چون و چرا په ځان باندې تسلیم کړم او نۀ فیرنګیانو دا غوښتل چې عبدالرحمن خان دې د خپل لښکر په زور ځان د کابل یا د افغانستان د څۀ حصې مالک کړي په دې وجه د اپریل د میاشتې نه پس هم عبدالرحمن خان او هم انګریزانو ځان ځان له د خپل مطلب براری دپاره سیاسي چالونه شروع کړل. فیرنګیانو په عبدالرحمن خان باندې د خپلو شرطونو منلو دپاره دا چل وکړو چې هغوي یو خوا د عبدالرحمن خان سره او بل خوا د یعقوب خان ډلې سره د یو بل حاکم د تلاش دپاره خبرې جاري وساتلې. او په دې غرض هغوي مستوفي حبیب الله خان په خپل لاس کښې د عبدالرحمن خان د ویرولو دپاره وساتلو. عبدالرحمن خان هم د فیرنګیانو په دې چل پوهه وۀ چنانچه هغۀ یو خوا خو فیرنګیانو سره په رضا صلاح کابل ته د راتلو او د فیرنګیانو په مشوره د کار کولو دپاره خط و کتابت کولو او بل خوا ئې د کابل د کوهستان او د چارچاپیره علاقې د لویو لویو خانانو او سردارانو سره پټ پټ خط و کتابت په دې غرض کولو چې تاسو ما د انګریزانو د وساطت نه بغیر د افغانستان خودمختار امیر تسلیم کړئ او بیا دې سره سم هغه په کابل باندې د فوځي پیشقدمی دپاره د غازیانو په راجمع کولو کښې شپه او ورځ مصروف شو. ترکومه پورې چې رابرټس د شمالي افغانستان د فوځي او سیاسي معاملاتو کل اختیار وۀ د تر هغې پورې خو فیرنګیانو دا دورنګي وچلوله او عبدالرحمن خان هم ځان له د خپل طاقت د زیاتولو انتهائي کوشش وکړو. او قریباً درې لکه غازیان ئې ځان سره د فیرنګیانو د افغانستان نه په زور ایستو دپاره تیار کړل. د دې نه پس هغۀ مستر ګرفن ته په یو خط کښې دا صاف طور ولیکل چې "زۀ دا غواړم چې هرڅومره ملک باندې زما نیکۀ دوست محمد خان امیر وۀ هغه دې ټول ماته حواله شي." یعنې په نورو الفاظو کښې د قندهار په بیلیدو یا د هرات په جدایی باندې زۀ ناراض یم روس سره د تعلقاتو ساتلو په باره کښې هم هغۀ دا خیال ظاهر کړو چې زۀ هغوي قطعاً د ځان نه خفه کول نۀ غواړم ځکه چې ما ډیره موده د هغوي نمک خوړلے دے د عبدالرحمن خان په دې خیالاتو باندې په افغانستان کښې مقیم فیرنګیانو د خفګان او د ناراضګی اظهار وکړو اوځنو ځنو پکښې دا رائ هم ورکړه چې

انګريزانو له ايوب خان د يعقوب خان کشر ورور سره او يعقوب خان سره بيا خبرې اترې کول پکار دي. حکومت هند په دې خبرو بالکل غوږ کښينښود ځکه چې په برطانيه کښې مسټر ګليډسټون وزير اعظم شوے وۀ او د هغۀ حکومت دا غوښتل چې د افغانستان مشکله مسئله او په هغې باندې دا بې انتها خرڅ ختمول پکار دي تر دې پورې چې هغوي د قندهار د صوبې د کابل د صوبې نه د جدا کولو او د هغې دپاره د والي شير علي د مقررولو هم برخلاف وو. د دې نوي حکومت پاليسي دا وه چې د افغانستان حکومت دې څومره چې ممکن کيدے شي وسيع مضبوط اوازاد وي. د دې دپاره چې هغه د روس او د انګريزي حکومت هند په منځکښې د يو مستحکم ديوال کار وکړي. نه چې هغه د انګريزانو نه هميش ناراض او د هغوي دشمن وي. بلکې پکار دي چې هغه د فيرنګيانو يو دوست او اتحادي حکومت وي د دې اصولو د لاندې حکومت هند اوس صرف د عبدالرحمٰن خان سره د خبرو اترو کولو فيصله وکړه اود يعقوب خان ډلې سره ئې هر قسم ګفتګو بند کړه. چنانچه څۀ وخت چې د رابرټس په ځاے سر ډانلډ سټورټ ته د افغانستان د جمله پوليټيکل معاملاتو کلي اختيارات حاصل شو نو هغۀ د عبدالرحمٰن خان د اطمينان دپاره مستوفي حبيب الله هندوستان ته جلا وطن کړو. رابرټس د مستوفي حبيب الله د جلاوطنۍ هم برخلاف وۀ ځکه چې د هغۀ دا خيال وۀ چې د هغۀ په لرې کيدو به د عبدالرحمٰن خان د زړۀ نه د بلې ډلې د برسراقتدار کيدو ټوله ويره لاړه شي او بيا به هغه د فيرنګيانو نه د خپلې خوښې شرطونه غواړي. بهرصورت د رابرټس او د لارډ ليټن ټوله پاليسي د نوي ازاد خيال حکومت په راتلو سره بالکل بدله شوه او په دې وجه عبدالرحمٰن خان هم د انګريزانو سره په ديانتدارۍ د يو باعزته جوړې کولو اراده وکړه. په دې ورځو کښې عبدالرحمٰن خان د ترکستان نه د کوهستان علاقې چې د کابل علاقې سره يو ځاے قطب طرف ته پرته ده د غازيانو يو لوے لښکر سره راروان شو او هزارها خلقو په لاره د هغۀ په لاس بيعت وکړو او هغۀ سره د انګريزانو برخلاف د جنګ کولو قول قسم ئې وکړو. د کوهستان نه هغه بيا چاريکار ته راغلو او د کابل سياسي خلقو سره ئې ښکاره خبرې اترې شروع کړې. د عبدالرحمٰن خان په دې زور شور سره د کابل خوا ته په رارسيدلو د کابل په خلقو کښې يو زبردست هيجان پيدا شو. او د فيرنګيانو په فوځي افسرانو کښې د تشويش آثار پيدا شول ځکه هغوي د افغانستان پښتنو ته دا نۀ ظاهرولے چې عبدالرحمٰن خان زمونږ د مرضۍ نه خلاف د کابل په طرف پيشقدمي کوي او نۀ پوهيدل چې په کومه طريقه مونږ عبدالرحمٰن خان د نور راوړاندې کيدو نه منع کړو.

په شلمه جولايۍ دافغان قبائلو هغه مشرانو چې په کابل او کوهستان کښې وسيدل عبدالرحمٰن خان باقاعده طور د چاريکار په مقام خپل امير او بادشاه تسليم کړو او د هغۀ نوم ئې پہ خطبه کښې ولوستو. په هغه ورځ د افغانستان په خلقو کښې د خوشحالۍ ډمامې

وغبریدلې او هغوي شکر وکړلو چې خدایې پاک زمونږ یو مسلمان پښتون بادشاه او فرمانروا کړو. هر کله چې فیرنګیانو دا واوریدل نو د هغوي هم بله لاره بغیر د دې نه نۀ وه چې هغوي هم عبدالرحمن خان امیر تسلیم کړي. چنانچه په دویشتمه جولایۍ په کابل کښې انګریزانو خان له یو لوی دربار وکړو او عبدالرحمن خان ئې د ټولو انګریزي افسرانو او د کابل د سردارانو په موجودګۍ کښې د کابل امیر تسلیم کړو. د دې نه پس انګریزي جرنیل سمدستي د افغانستان نه د روانیدو احکام فوځ ته جاري کړل.

په یو کم دیرشمه جولایۍ د شملې نه د تار په ذریعه سر ډانلډ سټورټ ته خبر راغلو چې ایوب خان د یعقوب خان کشر ورور د میوند په مقام د بریګیډیر جنرل بروز انګریز فوځ له شکست ورکړو او جنرل پرائمروز ئې باقي انګریزي فوځ سره د قندهار دننه محصور کړې دې. د دې خبر په وجه نۀ صرف په ټول افغانستان او سرحداتو کښې بلکې د هندوستان په محکوم قومونو کښې د فیرنګیانو برخلاف د بې چینۍ خیالات پیدا شو ځکه چې دا ټول وطن د یو سر نه تر بله سره پورې د دې غیر قوم په حکومت ناراض وو او هر کله چې به د هغوي د شکست څۀ خبر د دوئ د غوږو تیر شو نو د دوئ په زړونو کښې به هم د خپل ملک د ازادۍ امیدونه تازه شول. په دې وجه انګریزانو سره د دې بد خبر په سبب ډیر فکر پیدا شو او سمدستي ئې فیصله وکړه چې د هغوي په فوځي کارنامو باندې دا کاري زخم لګیدلې دې دا دې فوراً لرې کړې شي د دې غرض دپاره رابرټس سمدستي په دیرشمه جولائي 1880ء د تار په ذریعه وائسرایې هند ته دا تجویز پیش کړو چې د قندهار د انګریزي فوځ د امداد دپاره دې د کابل نه یو ښۀ مضبوط فوځ سمدستي روان کړې شي او د سر ډانلډ سټورټ د رائ مطابق د هغې کمان دې ماله راکړې شي.

چونکې د میوند د شکست په سبب د انګریزانو وقار او رعب ته په افغانستان کښې ډیره صدمه رسیدلې وه او خلق پوهه وو چې اوس به ټول انګریزي فوځ د قندهار په طرف روانیږي د دې نه علاوه د عبدالرحمن خان د کیمپ نه به هزارها مسلح غازیان هره ورځ د کابل په خواوشا کښې ګرځیدل له دې کبله فیرنګیانو ته دا خبره ضروري ښکاره شوه چې اوس د کابل معاملات سمدستي فیصله کول پکار دي د دې دپاره چې زمونږ تمام تر توجه د قندهار قضیې فیصله کولو ته شي. او انګریزي فوځونه د کابل نه زر رخصت شي تر دې وخته پورې یو انګریزي افسر هم لا عبدالرحمن خان سره ملاقات نۀ وۀ کړې او نۀ انګریزانو لا هغۀ سره څۀ شرطونه فیصله کړي وو هغوي د هغۀ د امیرۍ اعلان صرف په دې وجه کړې وۀ چې هغه په کابل باندې د غازیانو یو عظیم الشان جمعیت سره راروان وۀ او اګرچې عبدالرحمن خان دا نۀ غوښتل چې فیرنګیانو سره زما تصادم پیښ شي ولې کۀ چرې فیرنګیانو د هغۀ په لاره کښې څۀ مشکلات پیدا کړې وې نو هغۀ په زړۀ کښې دا فیصله کړې وه چې کۀ د

انګریزانو رضا وي او کهٔ نهٔ وي زهٔ به د خپل پلار نیکهٔ په وطن قبضه کوم چنانچه د دې تړلې معاملې غوټې پریکړې فیصلې کولو دپاره سر ډانلډ سټورټ دا فیصله وکړه چې مسټر ګرفن دې عبدالرحمٰن خان سره په خپله خلهٔ د خبرو اترو کولو دپاره ذمهٔ نومے یو ځاے ته چې د کابل نه شپاړس میله لرې دے د رسالې یوې دستې سره لاړ شي. مسټر ګرفن د دې تجویز مطابق عبدالرحمٰن خان سره په دې مقام درې ورځې جرګې د 30جولایی نه تر یکم اګست پورې وکړې او چونکې دواړه فریقه د جوړې کولو خواهش مند وو، د هغوي په منځکښې تړلې خبرې په ښهٔ شان سره فیصله شوې. او ګرفن د عبدالرحمٰن خان په وینا هغهٔ له د خپل حکومت د طرف نه لاندینے تجویز ورکړو :

"هز اکسي لنسي وائسراے او ګورنر جنرل باجلاس کونسل د دې خبرې په معلومولو خوشحاله شوے دے چې آنجناب د حکومت برطانیه په بلنه کابل طرف ته راروان شوے ئ. چونکې د آنجناب ارادې مونږ سره د دوستۍ دي او چونکې د افغانستان سردارانو او عامو خلقو ته په دې کښې فائده ده، چې د آنجناب د مشرۍ د لاندې یو باقاعده حکومت قائم شي. په دې وجوهاتو حکومت برطانیه آنجناب د کابل امیر تسلیموي. ماته د وائسراے او د هندوستان د ګورنر جنرل د طرف نه دا اختیار شته چې زهٔ آنجناب ته د دې خبرې اطلاع ورکړم چې حکومت برطانیه هرګز د دې خبرې خواهش مند نهٔ دے چې هغوي د هغې علاقې په اندروني حکومت کښې څهٔ قسم دخل ورکړي. کومه چې د آنجناب په قبضه کښې ده او نهٔ هغوي دا خواهش لري چې په دې علاقه کښې دې هغوي په یو ځاے کښې هم انګریزي ریزیډنټ مقرر کړي. البته د عام دوستانه تعلق د آسانتیا دپاره لکه چې څنګه په دوه ګاونډي حکومتونو کښې عام طور سره ساتلے شي، ممکن ده چې د حکومت برطانیه یو مسلمان ایجنټ د دواړو حکومتونو په اتفاق رائ په کابل کښې دیره کړې شي. آنجناب خواهش ظاهر کړے دے چې زهٔ دې ستا د علم راوستو دپاره د حکومت برطانیه خیالات او ارادې په دې باره کښې په تحریر کښې راولم چې د فرمانروائے کابل به بیروني حکومتونو سره د څهٔ قسم تعلقات وي. وائسراے او ګورنر جنرل باجلاس کونسل ماته د دې خبرې د وینا اختیار راکړے دے چې چونکې برطانیه د یو بیروني حکومت حق هم د افغانستان په معاملاتو کښې د دخل ورکولو نهٔ تسلیموي او چونکې روس او ایران دواړو دا اقرار کړے دے چې مونږ به د افغانستان په معاملاتو کښې دخل نهٔ ورکوؤ له دې کبله دا خبره بالکل ښکاره ده چې آنجناب بغیر د حکومت برطانیه نه بل بیروني حکومت سره سیاسي تعلقات نهٔ شي ساتلے. کهٔ چرې بالفرض یو بل بیروني طاقت د افغانستان په معاملاتو کښې د دخل ورکولو کوشش وکړو او د هغې دخل په سبب د آنجناب په مملکت باندې چا ناجائزه حمله وکړه نو په هغه صورت کښې به حکومت برطانیه دې خبرې ته تیار وي چې هغوي تاله په هغه طریقه او هغه هومره

امداد درکړي څومره چې هغوي ته د هغه حملې د مدافعت دپاره ضروري ښکاري. بشرطيکه آنجناب د خپل بيروني تعلقاتو په باره کښې بې چون و چرا د حکومت برطانيه په مشوره عمل کړے وي."

بيا مسټر ګرفن عبدالرحمٰن خان ته دعوت ورکړو چې ته په سبا ورځ يعنې په دويم اګست کابل ته فيرنګيانو ته په مخه ښه او سر ډانلډ سټورټ سره د ملاقات دپاره قبل د هغوي د رخصتيدو نه راشه. ولې چونکې د هغهٔ څنې ملګرې د دې تجويز نه سخت خلاف وو او قسم ئې وخوړو چې کهٔ ته په دې طريقه د فيرنګيانو کيمپ ته لاړې نو مونږ به د تا نه جدا شو. په دې وجه هغهٔ دا دعوت نامنظور کړو. ولې دې سره هغهٔ مسټر ګرفن ته دا ووئيل چې هر کله جنرل رابرټس قندهار ته سره د خپلو فوځونو رخصت او سر ډانلډ سټورټ هم د پيښور په طرف روانيدو ته تيار شي نو بيا به زهٔ سرډانلډ سټورټ ته په مخه ښه وئيلو دپاره انګريزي کيمپ ته لاړ شم. مسټر ګرفن هغهٔ نه دا سوال هم وکړو چې ته د انګريزي فوځونو د حفاظت او د خرځ خوراک د پيدا کولو انتظام هم وکړه چې په هغوي کښې څهٔ خو قندهار طرف ته د جنرل رابرټس د لاندې د روانيدو دپاره تياريدل او باقي سر ډانلډ سټورټ سره د پيښور په طرف روانيدل.

عبدالرحمٰن خان په دې باره کښې د مسټر ګرفن پوره طبع تسلي وکړه او ورته ئې ووئيل چې د خيبر د سرحد پورې به زهٔ دا ټول انتظام سر ته ورسوم. چنانچه هر کله چې جنرل رابرټس په اتم اګست د کابل نه د قندهار په لوري روان شو نو عبدالرحمٰن خان د خپل طرف نه سردار محمد عزيز خان د سردار شمس الدين خان زوے سره د يو څو نورو افسرانو د دې انتظام دپاره مقرر کړل. او هغوي ته ئې هدايت وکړو چې هيڅوک دې په لاره د رابرټس د فوځ مقابله نهٔ کوي. چنانچه دا هم د عبدالرحمٰن خان د دې افسرانو د رسوخ د کوششونو نتيجه وه چې رابرټس ته په لاره نهٔ خو د سامان رسد په حاصلولو کښې څهٔ تکليف وشو او نهٔ په لاره باندې د هغهٔ چا مقابله وکړه.

سر ډانلډ سټورټ او مسټر ګرفن په لسم اګست سره د خپل باقيمانده انګريزي فوځ د شيرپور د چاوڼۍ نه د پيښور په طرف روان شول. چنانچه عبدالرحمٰن خان د هغوي د روانيدو نه يو څو منټه وړومبے هغوي ته په مخه ښه وئيلو دپاره شير پور ته ورغلو. په دې موقع سر ډانلډ سټورټ او عبدالرحمٰن خان په شريکه يو دربار وکړو چې په پنځلسو منټو کښې ختم شو او هغوي يو بل سره په دوستانه طريقه باندې په خير راغلے او په مخه ښه ووئيل. سر ډانلډ سټورټ د خبرو اترو په دوران کښې دا فيصله هم وکړه چې عبدالرحمٰن خان ته دې د افغانستان د حکومت په توپو کښې ديرش توپې حواله شي کومې چې دا وخت په شيرپور کښې پرتې وے. او هغه نولس لکه روپۍ ئې هم هغهٔ ته ورکړې کومې چې

فیـرنـګیانو د خپل قیام په دوران کښې د مالیې په طور د خلقو نه وصول کړے وے. هغهٔ دا هم فیـصـله وکړه چې کومې دوه درې قلاګانې فیرنګیانو په کابل کښې جوړې کړے وے هغه دې هم نهٔ ورانیږي.

## دویمه حصه ختمه شوه

# د پښتنو تاریخ

## څلورمه برخه

د امیر عبدالرحمٰن خان
د قلم نه

کال 1960ء



ترجمه له

## قاضی عطاء اللّٰه خان مرحوم

# دیباچه

د پښتنو تاریخ اول جلد، دویم جلد او دریم جلد به تاسو لوستي وي. دا کتابونه مرحوم عطاء الله خان د نظر بندی په زمانه کښې لیکلي وو. قاضي صاحب د خدائي خدمتګار تحریک او د ملک د ازادی د جنګ یو سرګرم کارکن په حیثیت په پنځویشتم دسمبر 1931ء کښې په اول ځل ونیوے شو په دغه ورځو کښې په زرګونو خدائي خدمتګار نیولي شوي وو خو دا ټول د هري پور، ډیره اسماعیل خان، پیښور او ځنې کوهاټ ، بنو په جیلونو کښې ساتلي شوي وو. صرف څلور مشرانو ته ډیر اهمیت ورکړے شوے وۀ یو باچا خان خان عبدالغفار خان دویم مرحوم ډاکټر خان صاحب دریم مرحوم قاضي عطاء الله خان او څلورم د ډاکټر خان صاحب مشرے زوے خان سعد الله خان ته. وړومبني دوه مشران د هندوستان د سي پي صوبې په هزاري باغ جیل کښې او وروستني دوه صاحبان د بنارس په سنټرل جیل کښې ساتلي شوي وو. قاضي صاحب یو عالم فاضل سړے وۀ دۀ په جیل خانه کښې ډیر تاریخي کتابونه حاصل کړل او د پښتنو تاریخ ئې تیار کړو. دا قلمي مسوده تر ډیرې مودې دغسې پرته وه. د قاضي صاحب ډیر شوق وۀ چې چاپ شي خو د قومي تحریک او وروستو د وزارت د ډیر مصروفیت په وجه ئې دې ته وخت ونۀ ویستې شو. کله کله به ئې ماته وې چې زما مدد وکړه او زما دا کتاب چاپ کړه. زۀ ورته نۀ وزګاریدم اخر د کال 1947ء په اخرو ورځو کښې ترې ما مسوده واخسته او کاتب ته مې حواله کړه. د پښتو کتابت د وړومبي جلد وشو خو د انګریزي حصې ډیر وخت واخستو ځکه چې زۀ پخپله په انګریزی پوهیدم نه او قاضي صاحب وزګار نۀ وۀ. اخر د یو پریس منیجر ته مې کار وسپارلو. څۀ غلط څۀ صحیح خو کتاب چاپ شو. او دا کتاب لا خور شوے نۀ وۀ چې قاضي صاحب بیا ونیوے شو. دا جون 1948ء وۀ. ما د قاضي صاحب په غیر موجودګۍ کښې دویمه حصه هم چاپ کړه مګر د دریمې حصې مسوده قاضي صاحب د حیدراباد سندھ سنټرل جیل ته زما نه وغوښته او تر ډیرې مودې ئې د ځان سره وساتله. تر دې چې قاضي صاحب په جیل کښې ناجوړه شو. ډیره موده پس په جیل کښې رنځور پروت وۀ. اخر په میو هسپتال لاهور کښې د نظر بندی په دوران کښې په کال 1951ء کښې وفات شو او په مردان کښې د خپلې بنګلې په چمن کښې دفن کړے شو. دې نه پس یوه ورځ د قاضي صاحب مشر زوم خان سعد الله خان د مردان نه راغے ماته ئې ووې چې د بیمارۍ په ورځو کښې د قاضي صاحب مرحوم لوے ارمان دا وۀ چې د هغۀ د کتاب باقي حصې به څنګه چاپ شي؟ ما ورته ووې چې ما خو نۀ اول څۀ عذر کړے وۀ او نۀ مې اوس څۀ عذر شته. اول خو مې د کتابونو تجارت نۀ کولو نو څۀ قدرې به راته ګرانه وه او اوس خو دا زما پیشه ده. خبره مو وکړه خو ماته تر ډیرې مودې مسوده را ونۀ رسیده

اخر د خان عبدالعلي خان (چې د باچا خان کشر زوی دی او د قاضي صاحب مرحوم دویم زوم دی) په ذریعه مسوده ماته راورسیده. او دریم جلد د پښتنو تاریخ مې چاپ کړو. پاتې شوه دا حصه (د څلورم جلد) دا چونکې د هغې سلسلې کړی نۀ وه دا یو قسم بیل څیز وۀ نو څو ورځې مو په دې کښې تیرې کړې چې دا چاپ کړو کۀ نه؟ اخر ټولو پوهانو دوستانو صلاح راکړه چې د دې نوعیت جدا نۀ دی. هغه حصې هم د پښتنو د ازادی تاریخ وۀ او دا هم د هغې قسم یو مضمون دی نو چاپول ئې پکار دي او دا دې د پښتنو د تاریخ څلورم جلد وشمیرلے شي. نو دا دے کتاب چاپ شو او ستاسو لاس ته ورسیدو. دا کتاب د مرحوم امیر عبدالرحمٰن خان د قلم نه لیکلے شوے دے خو افسوس چې قاضي صاحب له اصلي کتاب په لاس نۀ دے ورغلے. قاضي صاحب دا کتاب د انګریزی نه ترجمه کړے دے او مونږ هم هغسې چاپ کړو. د تاج التواریخ په نوم یو کتاب په فارسی کښې هم چاپ شوے دے خو دا هم د انګریزی نه ترجمه شوے دے. دا کتاب چا غلام مرتضیٰ خان قندهاري چې د ایران په سفارت خانه کښې د انګریزي سفارت خانې یو رکن وۀ د مرزا عبد الله خان په امداد لیکلے دے.

امیر عبدالرحمٰن خان خپل د پیدائش د مور پلار او ابتدائي حالات نۀ دي لیکلي صرف د هغه زمانې نه ئې قصه شروع کړې ده چې د دۀ والد امیر محمد افضل خان د بلخ ګورنر وۀ او د شبرغان د محاصرې په کار مشغول وۀ. او د عبدالرحمٰن خان عمر دغه وخت ایله نهۀ کاله وۀ. دا کال 1270هجري وو.

په اول بابونو کښې د امیر صاحب د ژوند عجیبه عجیبه واقعات لیکلي شوي دي په ډیر کم عمر کښې چې دۀ کومې بهادری کړي دي، دۀ کوم تکلیفونه برداشت کړي دي، د دۀ عجیبه عجیبه خلقو سره معاملې پیښې شوي دي. دۀ د سفر کوم تکلیفونه برداشت کړي دي هغه د بیا بیا لوستو قابل دي. لس یوولس کاله د روس او بخارا په علاقو کښې در په در ګرځیدلے دے او د خپلو کوششونو په برکت اخر د افغانستان د حکومت په حاصلولو کښې کامیاب شوے دے. دغه ټول حالات په تفصیل سره لیکلي شوي دي. په اخري بابونو کښې د ملک د انتظامي امورو او هغه تدبیرونو ذکر دے چې امیر صاحب د خپل خداداد تدبر او لیاقت په وجه په عمل کښې راوستي دي. او د هغه خلقو سرکوبی کښې ئې هیڅ حیله نۀ ده کړې چا چې په ملک کښې د فتنې سر پورته کړے دے او د دۀ په لار کښې حائل شوے دے. مونږ دا نشو وئیلے چې د امیر صاحب د خپل اصل تصنیف شوي کتاب او د انګریزي تصنیف شوي کتاب ترمنځه څۀ اختلاف شته او کۀ دا هو بهو هغه کتاب دے چې امیر صاحب لیکلے دے. کیدے شي چې انګریزانو مصنفانو پکښې څۀ کوز پاس کړي وي او د اصل کتاب په مضمون کښې ئې د خپل شهنشاهیت د مفادو په خاطر ردوبدل کړے وي. بهرحال مونږ قام ته

هغه څيز پيش کوؤ چې څۀ په لاس راغلے دے. زۀ اميد کوم چې د قاضي صاحب دا خدمت به پښتـانـۀ تـر عمره ياد لري او د هغۀ د اصول تر لاندې به وي. زۀ په اخر کښې دعا کوم چې الله تعالیٰ دې د قاضي صاحب په ګور نُور کړي او په پښتون قام دې الله تعالیٰ فضل وکړي چې يو شي او خپل ملک او قام اباد کړي.

فقط

عبدالخالق خليق

د ادارۀ اشاعت سرحد پيښور مالک

جنوري 1960ء مطابق رجب 1379هجري

# اول باب

د عبدالرحمن خان د هلکوالي زمانه، د دهٔ د سبق نه زړهٔ توریدل، او د څهٔ مودې دپاره بندي کیدل، او بیا خلاصیدل، او په بلخ کښې د فوځ سپه سالار کیدل او د تاشقرغان په طرف تلل، د میر اتالیق سره جنګیدل او فتحیاب کیدل، بیا د بدخشان د باغیانو د سرکوبی دپاره تلل او کامیابیدل، د بدخشان پنځوس سوداګر ګرفتاریدل او د دوئ مالونه ضبطیدل او قتلیدل، په دې جرم چې په حقیقت کښې دوئ به لارې وهلې او پښتانهٔ به ئ تنګول، د میر جهاندار شاه والي بدخشان د دې سړو په سختئ سره مطالبه کول مګر د هغهٔ قاصد سپک لیږل، په نتیجه کښې میر جهاندار شاه سلامي کیدل او تحفې رالیږل او د عبدالرحمن خان هغهٔ ته معافي ورکول.

غرمه به زما د سبق کار خلاص شو نو زهٔ به دې سکول له تلم او په خپل لاس به مې د لوهارئ کار زده کولو او د سوهان وهلو چل به مې هم زده کولو. دغه شان ما د رائفل د جوړولو کار زده کړو او درې مکمل دوه نیله رائفلونه مې په خپل لاس جوړ کړل. دا ټوپکونه ما د هغې ټوپکونو نه ښهٔ جوړ کړل چې کوم زما استاذانو جوړ کړي وو.

اوس سردار عبدالرحیم خان زما په کار باندې ډیر حسد وکړو او زما برخلاف ئ سازشونه جوړ کړل. یوه ورځ هغهٔ زما پلار ته ووې چې عبدالرحمن خان په شرابو او د چرسو په څښلو عادت شوے دے حالانکې ما دا یو کار هم نهٔ وهٔ کړے. لیکن چونکې زهٔ هلک وم او په روزانه بدو وینا ګانو باندې به ډیر خفه کیدم له دې کبله ما اراده وکړه چې د بلخ نه خپل سخر څخه هرات ته تښتم. د دې غرض دپاره ما پټې تیارئ کولې چې زما نوکرانو زما پلار په دې خبر کړو او چونکې د تحقیقات نه هغهٔ ته دا خبره صحیح ثابته شوه، هغهٔ زهٔ په بندي خانه کښې واچولم. او زما ټول سپاهیان مریونه او نوکران ئ زما نه واخستل. زما د بیوقوفئ په وجه عبدالرحیم هغه ټول الزامات په ما ثابت کړل. زهٔ یو کال په بندي خانه کښې وم. زنځیرې زما پښو ته پرتې وے او زهٔ ډیر سخت دلګیر وم. هم په دغه ورځو کښې شیر محمد خان مړ شو او د عبدالرحیم خان دا طمع وه چې زهٔ به د هغهٔ په ځاے جرنیل شم. لیکن زما پلار په هغهٔ بدګمان وهٔ چې دا سړے غدار دے له دې کبله هغهٔ یو خپل ذاتي اعتباري ملازم عبدالرؤف خان د جعفر خان زوے چې د توخي (یعنې غلجي) قبیلې نه وهٔ مقرر کړو. دې جعفر خان په ډیرو معرکو کښې خپل ځان یو ډیر بهادر سپاهي ثابت کړے وهٔ. او د قندهار په جنګ کښې مړ شوے وهٔ. هرکله چې هغهٔ ته پته ولګیده چې زهٔ سالار اعظم شوے یم نو هغهٔ د دې عهدې د قبلولو نه انکار وکړو او زما پلار ته ئ ووې چې ستا خپل زوے چې د یو کال نه

بـنـدي خـانـه کبنې پروت دے او د خپلو جرمونو کافي سزا ئ خوړلې ده، د دې عهدې دپاره زیات موزون دے. وړومبے خو زما پلار د دې تجویز د منلو نه انکار وکړو او عبدالرؤف خان تـه ئ ووې چې تهٔ لیونے ئ چې دا خیال کوے چې عبدالرحمٰن خان ته دې د فوځ انتظام حواله شـي لیکن هغهٔ اِصرار وکړو چې یو ځل دې ضرور په عبدالرحمٰن خان ازمیښت وکړې شي په دې وجه هغهٔ دا تجویز منظور کړو او زهٔ ئ ځان ته راوغوښتم.

زهٔ نیغ د بـنـدي خـانې نه د خپل پلار په مخکښې د پیش کیدو دپاره راغلم نهٔ مې مخ وینـځلے وهٔ او نهٔ مې ویښتهٔ جوړ کړي وو بلکې هغه جامې مې اغوستې وے چې کومې هغهٔ د قیـد پـه ورځ لیدلے وے او زنځیرې هم زما په پښو کښې پرتې وے خو چې ځهٔ وخت هغهٔ زهٔ ولیـدم نـو د هـغـهٔ سترګې د اوښکو نه ډکې شوې او ماته ئ ووئیل چې تهٔ ولې دا شان کارونه کوے مـا پـه جـواب کښې ووئیل ما هیڅ ورانے نهٔ دے کړے او دا زهٔ چې په دې موجوده حال کښـې یـم نـو دا ټول د هغې خلقو ګناه ده چې ځوک ځان ته ستا خیرخواه وائي. دغه ساعت چې مـا خـبـرې کـولـې نو عبدالرحیم خان دربار ته راغلو ما چې هغه ولیدو نو پلار ته مې ووې چـې دا هـغـه غـدار دے چې زنځیرونه ئ ماته اچولي دي زمانه به وښیي چې مونږ دواړو کښې کوم یو ته ګناه ده؟

پـه دې باندې د عبدالرحیم رنګ دخفګان او فکر نه فق شو لیکن نهٔ هغهٔ څهٔ کولے شو او نـهٔ ئ وئیلے شـو. بیـا زمـا پلار ټولو فوځي افسرانو ته مخ کړو او وې وئیل چې زهٔ دا خپل پـاګل زوے په تاسو جرنیل کوم هغوي په جواب کښې ووئیل چې خدائے دې نهٔ کړي چې ستا زوے پـاګـل وي مـونـږ ته ښه معلومه ده چې هغه ډیر هوښیار او پوهه هلک دے او تا ته به هم ثـابـتـه شـي چـې دا ټـول نـمـک حـرام خـلـق دےّ چـې ځـوک هغه بدناموي. بیا زما پلار ما له رخصت راکړو چې ځه او خپل کار کوه.

زهٔ پـه دې ډیـر خـوشـحـالـه شوم او لارم حمام کښې مې ولامبل په دې منځکښې زما نـوکران راجمع شول ما له ئ زما په رهایی او په خوش قسمتی مبارکی راکړې. په بله ورځ ما د خپـل فوځ چارج واخستو او د کارخانو او میګزینونو ملاحظه مې وکړه ما جرنیل امیر احمد خـان (چې بیـا وروستـو هـغـه زما په هندوستان کښې په طور د سفیر مقرر شوے وهٔ) چې دغه وخت د توپخانې کمان افسر وهٔ، د کارخانو سپرنټنډنټ مقرر کړو. او کمانډنټ محمد زمان خـان مـې دمیګزینونو سپرنټنډنټ مقرر کړو. سکندر خان د غلام حیدر خان کمانډر انچیف وررور او یـو بـل سکندر خان چې بارکزے وهٔ ما د پلټنو لوے افسران مقرر کړل. ما به پخپله د سـحـر نـه تـر مـابـښـامه د مختلفو محکمو معائنې کولې او هره ورځ به مې خپل پلار ته رپورټ ورکـولـو او پـه دې به هغه زما نه نور هم خوشحالیدو. په دې ورځو کښې فوځ دومره ښهٔ منظم شـو چـې نهٔ چرې وړومبے شوے وهٔ او نهٔ به بیا چرې دا شان شي. د دې یوه غټه وجه دا ده چې

موجوده افسران ټول عيش پسند شوي دي. د امير شير علي خان په وختو کښې هغوي د ښوو په خوړلو اموخته شوي وو او د خپلو فرائضو نه به ئ غفلت کولو اوس هغوي له په خپلو تنخواه ګانو صبر او خپل کار باقاعده او په ښه طريقه کول پکار دي. اميد دے د خدائ پاک په فضل سره به زما قوم د دې نصيحت نه فائده وچته کړي او ورو ورو به ترقي وکړي.

زما پلار زما د فوځي خدماتو نه دومره خوشحاله شو چې ماته ئ په ټول فوځ پوره اختيار راکړو او صرف د علاقې سول اختيارات او د ماليې دحساب کتاب کار هغۀ ځان سره پريښودو. څۀ موده پس زما پلار تاشقرغان ته لاړو او زۀ هم سره د خپل باډي ګارډ هغۀ سره ملګرے شوم. مونږه چې ورسيدو نو د مير اتاليق ورور زما پلار له څۀ تحفې او يوه چيتي راوړه. زما پلار هغۀ سره ډير ښۀ پيش راغلو او هغۀ ته ئ ووئيل چې تۀ خپل ورور له زما د طرف نه دا پيغام يوسه چې چونکې ستا ملک د دريائے آمو په غاړه پروت دے او افغانستان سره د هغوي تګ راتګ دے دې دپاره تاله پکار دي چې تۀ خپل ځان د امير کابل دوست محمد خان د حفاظت لاندې وګڼې نه چې د شاه بخارا. او تاله پکار دي چې تۀ په خطبه کښې د دوست محمد خان نوم اخلے ځکه چې ستا موجوده دستور د افغانستان دپاره د بې عزتۍ باعث دے. مير اتاليق چې دا خبره واوريده نو خپل ورور ته په قهر شو او د هغۀ د نيولو کوشش ئ وکړو ليکن تاشقرغان ته راوتښتيدلو. د مير تاليق سوارۀ هغۀ پسې شول او آبدان نومے ځاے سره ئ ګرفتار کړو مونږ چې خبر شو نو مونږه د هغۀ امداد له سړي واستول مګر زمونږه د سړو د رسيدو نه وړومبے هغه قتل شوے وۀ او هغوي صرف دومره وکړل چې د مير اتاليق سړو له ئ شکست ورکړو او د هغۀ د ورور نعش ئ راوړو. مير اتاليق چې د خپلو سورو د شکست نه خبر شو نو امير مظفر شاه بخارا ته ئ شکايت وکړو. امير مظفر هم هغه کال د خپل پلار د مرګ نه پس په تخت ناست وۀ او دغه وخت په حصار کښې د يو بغاوت د فرو کولو دپاره مقيم وۀ بادشاه د مير اتاليق په شکايت باندې غوږ کښيښودو او يو نشان او يوه خيمه ئ ورله راواستوله او ورته ئ ووئيل چې دا خيمه په خپل ملک کښې ولګوه او د هغې مخکښې دا جنډه ښخه کړه چې پښتانۀ ترينه ويريږي. د دې احمق مير دا خيال وۀ چې بس دا پوره ده چنانچه هغه قطغن ته واپس راغے او زمونږ مقابلې ته ئ ځان جوړ کړو زما پلار د هغۀ د رويې متعلق امير ته رپورټ وکړو امير حکم وکړو چې قطغن ته فوځ وليږئ زما پلار خپل ورور سردار عظيم خان ته د ګرمې او خوستې نه د راتلو او هغۀ سره د ليدو دپاره دعوت ورکړو. زۀ ايبک ته د هغۀ د استقبال دپاره لاړم.

مخکښې سپرلي له چې لا فوځ قطغن ته روان شوے نۀ وۀ ما د شپږو ورځو چوټي د دې غرض دپاره واخسته چې زۀ په خپلو سترګو وګورم چې ټول انتظام درست دے او کۀ نه هر کله چې زما تسلي وشوه چې کار ټيک ټاک دے نو ما خپل پلار ته ووئيل چې راشه او تۀ

پخپله معائنه وکړه هغه زما د انتظام نه پوره خوشحاله شو او ماله ئ يو اس او د سرو زرو قيزې او زين او يوه مرصع پيټئ او توره راکړه او ماته ئ ووې چې " څه خدای دې مل شه زۀ دې هغۀ ته سپارم" ما د هغۀ لاسونه ښکل کړل او دوه ورځې پس زۀ هغۀ د خپل ترۀ د لاندې د فوځ کماندړ انچيف مقرر کړم او دغه شان زۀ روان شوم. پنځلس ورځې پس زما ترۀ په تاشقرغان کښې ما سره يوځاے شو او بيا يو ځاے ايبک ته لاړو. هغه ځاے کښې مونږ درې ورځې قيام وکړو او د خرڅ خوراک او د باربرداری د ځاروۇ انتظام مو وکړو. د هغه ځاے نه مونږ د غوري قلا ته روان شو چې په هغې کښې د مير اتاليق پلټن او رساله پرته وه مونږ سره شل زره فوځ او څلويښت توپې وے او هغه مونږ ټول د قلا مخې ته راوستل چې د مير اتاليق فوځ ئ په ښۀ شان سره ووينې. د هغې نه پس مونږ يو محفوظ ځاے کښې ديره شو مازيګر وخت دے. ما د ټولې قلا د بهر نه معائنه وکړه او د خپل فوځ دپاره مو مورچې جوړې کړې. د شپې مونږه د قلا خندق پورې سرنګونه وکنستل مير اتاليق هم څلويښت زره سورو سره د غرۀ په سوکه د خپلې قلا فوځ له د ډاډګيرنې دپاره راښکاره شو زۀ دوۀ زرو سورو او دولس د قچرباتری توپو او څلورو پلټنو سره د هغۀ په شا ورپريوتم. مير زمونږه د راتلو نه تر هغه وخته پورې بې خبره وۀ تر کومه چې ما په هغۀ توپې نۀ وے خلاصې کړې.

عبدالرحمٰن خان مخکښې وائي چې باوجود د غوري د قلا د مضبوطوالي نه ما په داسې هنر او هوښيارتيا په هغې حمله وکړه چې ورومبے مونږ د توپو د ګوله باری نه پس بهرنۍ قلا واخسته. او د هغې نه پس مونږه په بازار قبضه وکړه. او د هغه ځاے نه مو په اصلي قلا داسې زوروره حمله وکړه چې د قلا د فوځ پښه وخوئيده.

عبدالرحمٰن خان مخکښې وائي چې هر کله دا جنګ جاري وۀ نو ما د قلا ګورنر ته يوه چيټئ وليکله او په هغې کښې مې ورته وليکل چې کۀ چرې تۀ زما اطاعت قبول کړې نو زۀ به ستا د سورو د مال او د ځان بخشش وکړم او درته به د رعايا په نظر وګورم. ما د جنګ د بنديز حکم وکړو او دا چيټئ مې د يو قيدي په لاس وليږله. د قلا ګورنر اۆ لوے افسران پخپله بهر ته په دې غرض راووتل چې ما سره د اطاعت د قبلولو په شرطونو بحث مباحثه وکړي هغوي زما شرطونه ومنل د قلا دروازې ئ لرې کړې او د قلا ټول باشنده ګان راووتل. په دوئ کښې اکثريت ما خپل ترۀ څخه وليږل او هغۀ د هغوي خانانو له خلعتونه ورکړل او بيا ئ کورونو ته رخصت کړل. دا خلق په شمار کښې پوره لس زره وو ليکن چونکې مير د جنګ د فن نه ناواقفه وۀ هغۀ صرف د لسو ورځو خوراک په قلا کښې جمع کړے وۀ. او کۀ چرې ما حمله د يو څو ورځو دپاره ملتوي کړے وے نو هغوي به زما د اطاعت په قبلولو مجبور شوي وو. معلوميږي چې د مير دا خيال وۀ چې زما فوځ به يواځې د شاه بخارا په خيمه او جنده ځان ساتي. هر کله چې د مير اتاليق سرو زمونږ د مهرباني دا سلوک وکتو نو بيشانه

ډیر خوشحاله شو ځکه چې د هغوي مشرانو هغوي ته د پښتنو د سنګدلی او د ظلم خبرې کړې وې په دې وجه د هغوي ډیر سرې مونږ ته راواوړیدل او خپل کور ته واپس لاړل. میر اتالیق چې دا ولیدل نو یو څو سړو سره د قطغن نه وتښتیدو او د میران بدخشان په حکومت کښې ئ د رستاق په ښار کښې پناه واخسته چې مونږ په دې خبر شو نو مونږ سمدستي د غوري نه د هغهٔ صدر مقام بغلان ته روان شو او د هغه ځاے نه مو د علاقې ټولو مشرانو ته چیټهی ولیکلې او په هغې کښې مو هغوي سره د امداد وعدې وکړې او بعضو له مو پګښې خلعتونه ورکړل. بیا مونږ ګورنران او قاضیان مقرر کړل. د هغې نه پس زهٔ د بغلان نه خان اباد ته لاړم او د هغه ځاے نه مې دوه پلټنې او یو زر ازبک سوارهٔ، پنځهٔ سوه پښتانهٔ سوارهٔ او پنځهٔ سوه بې قاعدې پلټن سره د شپږو توپو تالیخان ته ولیږل د دې فوځ کمان افسر محمد یمین خان وهٔ. چې د امیر دوست محمد خان زوے وهٔ او زما ترهٔ هغه سردار کړے وهٔ. دا فوځ چې تالیخان ته ورسیدو نو فوراً ئ مورچې وکنستې او قلا ئ واخسته. زهٔ او زما ترهٔ په دې عرصه کښې د خان اباد د معاملاتو د فیصله کولو دپاره هم په هغه ښار کښې وو. منجمله د دې معاملاتو نه یوه دا وه چې د امیر دوست محمد خان نوم د خطبې په کتابونو کښې درج شو. د دې واقعې نه لږه موده پس میر اتالیق او میران بدخشان د اندراب او د خوست خلق بغاوت کولو ته ولمسول او هغوي د هغه علاقې په ګورنر باندې حمله وکړه. ما شلور زره سپاهیان د خان اباد نه د سردار محمد عمر د کمان لاندې د هغهٔ امداد ته ولیږل او زما نیکهٔ د کابل نه سردار محمد شریف خان سره د دوؤ پلټنو او یو زر بې قاعده فوځ یو زر رساله او شپږ توپې هغهٔ له ولیږلې دا دواړه فوځونه په بزدره باندې یو ځاے شو او د باغیانو ئ سخته سرکوبي وکړه. د باغیانو دوه زره تنه مړهٔ او زخمیان شول. د دې فتحې نه پس دواړه فوځونه خان اباد او کابل ته واپس شول او پنځهٔ سوه سړي د اندراب ګورنر سره پاتې شول. هر کله چې میر قطغن ته پته ولګیده چې د تالیخان قلا ورانه شوې ده نو رستاق ته راروان شو. او د دریائے آمو نه راپورې وتو او د قولاب په خوا کښې سیاد نومے یو ځاے سره دیره شو دغه ورځو کښې د قولاب میر سارا بیک وهٔ. چې بیا وروستو ئ د شاه بخارا نه شکست وخوړو او ما سره کابل ته راغے او زما د دربار یو معزز سردار شو. چونکې دې د میر اتالیق خپل وهٔ د دې کبله هغهٔ، هغهٔ له لس زره سوارهٔ په طور د امداد ورکړل او د بدخشان خلقو هم هغهٔ له لس زره سوارهٔ ورکړل. دې سره د هغهٔ خپل درې نیم زره سړي هم شامل شول او دې ټول لښکر په جمع د حضرت امام او تالیخان په خوا کښې په علاقه حمله وکړه او ټول د باربرداری سوارهٔ ئ تالا کړل ما هم د دوئ برخلاف سوارهٔ مقرر کړل. او په دې دواړو ټولو کښې به اکثر مقابله کیدله. په دې طریقه د دواړو فریقو نه سل سل یا دوه دوه سوه کسان مړهٔ شول. کوم باغیان چې مونږ ګرفتار کړي وو هغه ما په توپه کښې والوځول. دا بغاوت درې کاله روان وهٔ

او قریباً پنځهٔ زره باغیان ما په توپو والوځول. د دې نه علاوه لس زره باغیان زما د فوځ دلاسه قتل شول.

د دې بغاوت چې یو کال وشو نو سردار یمین خان زما ترهٔ ته ولیکل چې زهٔ د بدخشان پنځلس زره کورونو سره د مقابلې کولو طاقت په ځان کښې نهٔ وینم له دې کبله ما له فوراً کومک راولیږه کهٔ نهٔ وي نو زهٔ واپس کیږم. چونکې هغهٔ ته قطعي جواب چا ور نهٔ کړو هغه بې اجازته خان اباد ته راواپس شو. په دې ما خپل ترهٔ ته ووې چې زهٔ به د هغهٔ په ځاے جنګ له لاړ شم او د خداے په مدد سره به زهٔ دا ټول ملک صرف په شپږ د قچرباترو توپو او پنځو زرو سورو سم کړم. ماته ترهٔ په جواب کښې ووې چې دا ډیر ګران کار دے تهٔ لا وړوکے هلک ئې او ږیره دې لا هم نهٔ ده راغلې نو هسې نه چې ویریږې ما ورته ووې چې زهٔ به درته وښیم او بیا زهٔ هم په هغه ورځ روان شوم. د یو لوے مزل نه پس زهٔ تالیخان ته ورسیدم. هرکله چې فوځ زهٔ ولیدم نو هغوي ډیر خوشحاله شو او سردار یمین خان ماله په لاره په مخه راغے اګر چې هغهٔ زما ترهٔ وهٔ او زما نه په عمر کښې ډیر زیات وهٔ لیکن چونکې هغه بزدل ثابت شوے وهٔ ما د هغهٔ نه مخ واړولو او هغهٔ سره مې نورې څهٔ خبرې ونهٔ کړې. بغیر د دې نه چې تهٔ د خپل نامتو پلار دوست محمد خان دپاره باعث شرم ئې.

زهٔ چې ورسیدم نو هغې نه دوه ورځې پس د رستاق او د بدخشان خلقو د میر یوسف علي چې د فیض اباد د میر شاه ورور وهٔ د هدایاتو مطابق دوه درې سوه سوارهٔ د دې غرض دپاره مقرر کړل چې زما د کیمپ نه چارچاپیره علاقه او د تالیخان دره ټوله لوټ کړي. هغوي ناساپې زما د باربردارۍ په اوښانو او یابوانو باندې حمله وکړه چې هغوي دوۀ سوۀ بې قاعدې سپاهیانو او پنځوس سورو سره د رسد سامان راوړلو. هغوي سمدستي زما نه کومک وغوښتو او پخپله ئې هغوي سره مقابله شروع کړه. ما سمدستي هغهٔ له اووهٔ سوه سپاهیان ولیږل او دوئ دې خلقو له شکست ورکړو او اوښان او یابوان صحیح سلامت راورسیدل. دوه ورځې پس دغه شان بله واقعه پیښه شوه لیکن په هغې کښې هم باغیانو شکست وخوړو. درې میاشتو پورې هم دغه شان مقابلې جاري وے. چې یوه ورځ میران قطغن زما د قتل سازش وکړو او د هغوي مُلا زهٔ ډوډۍ له راوغوښتم زهٔ درې سوه د رسالې سورو او دوه سوه بې قاعدې سورو سره دې ډوډۍ له لاړم. ما سل تنه سوارهٔ د خپل ځان نه مخکښې د دې دپاره واستول چې ڈ دې مُلا د کور نه په څهٔ فاصله باندې چاپیره شي. زهٔ چې ورسیدم نو ډوډۍ کیښودې شوه ولې هم دغه وخت په دې سلو تنو سورو کښې یو تن ماله راغے او وې وئیل چې مونږ باندې یو لوے فوځ حمله وکړه او مونږ مجبوراً ورو ورو په شاه کیږو. ما فوراً خپل میزبان او د هغهٔ زامن ګرفتار کړل او خپلو سورو سره د شاملیدو دپاره روان شوم. دې سره سم ما خپل کیمپ ته یو سور ولیږلو چې یو زر سوارهٔ یوه پلټن او دوه توپې دې زما مدد له

سمدستي راروان شي. او د وخت د بچ کيدو دپاره مې هغوي ته هدايت ورکړو چې توپچيان او پلټن دې د رسالې سورو پسې سوارۀ شي چونکې د باغيانو لښکر په شمار کښې لس زره خلق وو ما دا خپل ورکوټې شان فوځ په اتو حصو کښې تقسيم کړو او بيله بيله حصه مې د يو بل نه په څۀ فاصله باندې ودروله. او د ټولو نه لويه حصه مې ځان سره وساتله. بيا مې ورومبۍ حصې ته د ډزو کولو حکم وکړو او هر کله چې د هغوي نه باغيان راتاؤ شول لکه چې څۀ رنګ زما طمع وه نو دويمې حصې ته مې بيا د ډزو کولو حکم ورکړو. او څۀ وخت چې د هغوي نه هم باغيان راتاؤ شو نودريمې حصې ته مې د حملې کولو حکم وکړو دغه شان اوؤ حصې په جنګ کښې شاملې شوې او اوس زما د حصې دا کار وۀ چې تورې راوباسو او په دشمن حمله وکړو.

په دې منځکښې زما د کيمپ نه امداد راورسيدو او ما يوه عامه حمله په باغيانو وکړه. چونکې د باغيانو طاقت هم په اتو حصو کښې تقسيم شوے وۀ هغوي زما د لاسه سخت شکست وخوړو او سل تنه مړۀ او څلور سوه قيديان ئې په ميدان کښې پريښودل. زما نه هم سل تنه سپاهيان مړۀ شول. په قيديانو کښې لس يا دولس تنه د رستاق مشران هم وو هغوي ټولو هغې ملا ته ډير کنځل وکړل او وې وئيل چې هغۀ د قطغن ميرانو ته ليکلي وو چې زۀ به د پښتنو د فوځ سالار مدعو کړم او بيا به ئې تاسو له په لاس کښې درکړم. خو شرط دا دے چې کۀ چرې تاسو زما باډي ګارډ له د شکست ورکولو دپاره کافي فوځ راستولے شئ. دغه وجه وه چې ميرانو دا مشران سره د لسو زرو سورو راستولي وو. هغه شپه زۀ ډير ناوخته خپل کيمپ ته واپس راغلم او د ټولې واقعې رپورټ مې خپل ترۀ له خان اباد ته واستولو او هغه ملا مې هغۀ له ورکړو. په قيديانو کښې چې څوک زخميان وو د هغوي مې ډاکټري علاج وکړو او هر کله چې هغوي جوړ شول نو په هغوي کښې مې څنو څنو له خلعتونه ورکړل او څنو له مې د لارې خرڅ ورکړو او رخصت مې کړل. او ورته مې ووئيل چې خپلو خلقو ته دا وينا وکړئ چې د شوکې او د غلا عادتونه پرېږدي. ما د هغوي مير ته دا پيغام وليږلو چې کۀ چرې تۀ جنګ کول غواړې نو پکار دي چې ستا ورور او تۀ ښکاره ميدان ته راوځئ. او دا فريب مۀ کوئ. يو طرف ته خو زما پلار له تخت پُل ته خپل قاصدان د دوستۍ ښکاره کولو دپاره ليږئ او بل طرف ته د هغۀ برخلاف سازشونه کوئ. ما هغوي ته دا پيغام هم ورسولو چې کۀ چرې زما پلار وغواړي چې بدخشان فتح کړم نو په مير کښې دومره طاقت نشته چې شپږ ګينټې زما مقابله وکړي. د قطغن قيديان ما پرې نښودل بلکې د هغوي خپلوانو ته مې پيغام وليږلو. (ځکه چې هغوي د قطغن نه تښتيدلي وو او د شاه بخارا په زمکه اباد شوي وو) چې کۀ چرې تاسو خپلو کورونو ته رانغلئ نو زۀ به دا ټول قيديان قتل کړم. ما دې قيديانو ته هم ووئيل چې خپلو خپلوانو سره په دې سلسله کښې خط و کتابت وکړئ. او هغوي ته ووايئ چې بې

خوف و خطر خپل ملک ته واپس شئ. د دې نتیجه دا راووته چې د قطغن یو شو ملیان په طور د هغوي د نمائنده ګانو په دې غرض راغلل چې ما سره د جوړې شرطونه فیصله کړي. ما هغوي ته د خدایے په نوم قسم وخوړو چې کۀ چرې ستاسو خلق حکومت افغانستان ته د نقصان رسولو کوشش ونۀ کړي او خپل ځان په امن او وفادار رعایا ثابت کړي نو زۀ به هغوي ته د خپلو خلقو په شان ګورم. او د هغوي د مفادو حفاظت به کوم. هر کله چې ملیانو زما دا خبرې هغوي ته ورسولے نو دوه زره تبرې خپلو کورونو ته واپس راغلې او په تالیخان کښې اباد شول. د بدخشان د قیدیانو په خلۀ چې کوم پیغام ما میر یوسف علي ته استولے وۀ د هغې نه د هغۀ په زړۀ هیڅ اثر ونۀ شو او د غلا او د شوکې د خوئ نه وانۀ وړیدل. د یو شو هفتو د امن نه پس هغۀ د قطغن او د قولاب میرانو او د هغۀ وررور میر شاه سره مشوره وکړه او هغوي ته ئ دا لمسون وکړو چې په عبدالرحمٰن باندې د یو قطعي فتحې حاصلولو دپاره دا ضروري ده چې مونږ ټول طاقت یو ځایے کړو او بیک وقت په هغۀ باندې په دوؤ مقاماتو یعنې تالیخان او چال کښې حمله وکړو. په چال کښې شلور سوه باقاعده سپاهیان د پلټنې شلور سوه بې قاعدې سپاهیان، پنځۀ سوه سوارۀ او دوه قچرباتری توپې د سردار محمد عالم خان د کمان لاندې چې یو ډیر بهادر او تجربه کار افسر وۀ، موجود وو. باغیانو د حملې تجویز په دا شان کړے وۀ چې یو ورکوټے شان ټولے به چارچاپیره علاقه د دې غرض دپاره لوټ کړي چې مونږه په دې دوکه کښې پاتې شو چې د باغیانو باقاعده فوځ نشته بلکې یو شو تنه راغلي دي دې سره سم به دیرش زره سوارۀ د تالیخان په باغونو کښې د شپې د میر علي ولي چې د میر اتالیق تربور وۀ د کمان لاندې پټ شي. د دې تجویز مطابق سحر سل تنه باغیان د خپلو ځایونو نه راووتل او سل اوښان ئ بوتلل چې دځر دپاره بهر راوتي وو. د فوځ د هراول افسر په خپلې ناپوهتیا صرف دوه سوه سوارۀ د دې اوښانو د خلاصولو دپاره ولیږل. زۀ چې د دې واقعې نه خبر شوم نو ما دې افسر ته ووئیل چې تا غلطي کړې ده چې دومره لږ سرې دې د مقابلې دپاره واستول او دې معلومه نۀ کړه چې د دشمن طاقت څومره دے. ځکه چې زما دا یقین وو چې سل تنه سورو هیچرې زما د هراول په موجودګۍ کښې زما د اوښانو د بوتلو جرأت نۀ وۀ کړے. تر څو چې د هغوي نور ملګري په خواوشا کښې پټ نۀ وے. له دې کبله ما ټول فوځ د جنګ دپاره تیار کړو. لا ډیر ساعت نۀ وۀ تیر شوے چې معلومه شوه چې زۀ په درستې وم ځکه چې زمونږه سرې لا په مشکله تیار شوي وو چې مونږ ولیدل چې زمونږ په سرو کښې اتۀ شلې تنه زما د یو لوے بهادر افسر د کمان لاندې مونږ طرف ته راتښتي. او شلور زره باغیان د هغوي تعاقب کوي. ما دا احتیاط کړے وۀ چې ما خپلې توپې سره د دوؤ سوؤ سپاهیانو د یوې غونډۍ په سر چې د هغې نوم ارتنبه وۀ مقرر کړي وو. او هغوي ته مې هدایت کړے وۀ چې تر څو ما حکم نۀ وي در کړے تر هغې ډز مۀ کوئ. د دې نه علاوه ما زر

تـنـه پیاده سپاهیان د باغیانو ښي طرف ته او پنځهٔ سوه کس طرف ته مقرر کړل او باقي رسالې او پیاده سپاهیانو سره زهٔ د مورچو نه بهر دشمن ته مخامخ ودریدم. هر کله چې جنګ ګرم شو او د دشمن توجه بالکل یو طرف ته شوه نو ما خپل توپچیان د دشمن شا ته ولیږل او هغه پیاده سپاهیانو ته مې چې د باغیانو ښي او کس طرف ته ولاړ وو د ډزو شروع کولو حکم ورکړو. دیخوا نه ما په ډیر زور شور سره د مخامخ نه حمله وکړه. هر کله چې په باغیانو د چارچاپیره نه د توپو او ټوپکو ګولۍ ووریدې او په دې پته پوهه نشو چې ما سره څومره طاقت دے نو د هغوي پښې وخوئیدې او توپچیانو طرف ته ئې مخ کړو. هر کله چې ما د هغوي دا حالت ولیدو نو رسالې ته مې د نورې مضبوطې حملې کولو اواز ورکړو. د باغیانو صفونه مات شول او مکمل شکست ئې وخوړو. نهٔ ګینتې جنګ په دې وزن وشو او د باغیانو نه درې زره مړهٔ په میدان کښې پاتې شول زمونږ د طرف نه سل کسه مړهٔ او څهٔ زخمیان شو. مونږه د باغیانو نه شپږ سوه قیدیان او پنځهٔ زره اسونه ونیول. بیا ما د مړو باغیانو د سرونو نه یوه قلعه مینار جوړ کړو چې ژوندي ترینه عبرت واخلي. بیا ما د خپلې فتحې یو پوره رپورټ خپل ترهٔ ته واستولو او هغهٔ له مې مبارکباد ورکړو.

د چال باغیانو ډیره معمولي شان مقابله وکړه ځکه چې هغوي په شمار کښې صرف دولس زره تنه وو. د هغوي سالاران میر بابا بیګ او میر سلطان مراد وو د لږې جګړې نه پس هغوي مات شول او سره د خپلو زخمیانو وتښتیدل. او سل تنه مړهٔ ترې په میدان کښې پاتې شول. میر بابا بیګ د اس نه وغورځیدو او پښه ئې ماته شوه. او خپلو سړو ځان سره بوتلو. د دې قطعي فتحې نه پس د میران بدخشان دا یقین وشو چې مونږ په صفا میدان جنګ کښې د منظم پښتنو سپاهیانو مقابله نهٔ شو کولے د دې دپاره زمونږ هم یوه لار ده او هغه دا ده چې مونږ خپل لوټ مار او د دغا بازۍ رویه بدستور جاري وساتو.

هم په دغه ایامو کښې میر مظفر شاه بخارا د دریائے آمو نه راپورې وتو او په چریکار کښې ډیره شو. د دې غرض دپاره چې هغه په خپلو سترګو وګوري چې پښتانهٔ د بدخشان خلقو سره څهٔ رنګ سلوک کوي. چونکې زما د پلار په زړهٔ کښې د میر مظفر د دوستانه تعلقاتو متعلق ډیر شک وهٔ له دې کبله هغهٔ زما پلار ته ولیکل چې تهٔ ماله اتهٔ زره چرخي سپاهیان د عبدالرحمٰن د کمان لاندې په طور د کومک راواستوه او دولس زره سړي ځان ته پریږده. دا وخت زما پلار سره لس نیم زره سړي موجود وو. دغه وخت دا هم ویره وه چې زمونږه ټول اُزبک رعایا زمونږ برخلاف راپاځي. ځکه چې هغوي او شاه بخارا د یو قام خلق وو چونکې زما ترهٔ د ترکستان د ملک نه ناواقف وهٔ هغه د دې ټولو واقعاتو په سبب خوفزده شو او ما ته ئې ولیکل چې د تالیخان قبضه فوراً پریږده او سره د فوځه خان اباد ته راشه. ما په جواب کښې ورته ولیکل چې دا به ښه وي کهٔ چرې زهٔ بشرط ضرورت د روانیدو دپاره ځان

تیار وساتم. ځکه چې دا به څۀ عقلمندي نۀ وي کۀ چرې زۀ دا ملک چې مونږ اوس اوس په مشکله او جنګونو فتح کړے دے بې فوځه پریږدم. ولې زما ترۀ زما په خبره غوږ کښینښودو او بیا ئ راته ولیکل چې سمدستي روان شه له دې کبله زما د دې حکم د تعمیل کولو نه بله لار پاتې نۀ شوه او زۀ سحر سبا خپل ټول فوځ سره روان شوم. چونکې د ټول سامان جنګ د وړلو دپاره ما سره کافي څاوري د باربرداری دپاره موجود نۀ وو ما دا حکم وکړو چې باقي مانده سامان جنګ دې پیاده او سوارۀ په خیلو کښې وویشي او هر یو سړے دې لږ فالتو بوج وچت کړي. د دې نه علاوه چونکې د خان اباد په لارې باندې خوراک په کافي مقدار کښې په لاس نۀ شو راتلې له دې کبله ما سل سوارۀ د لوټ دپاره واستول او ورته مې ووئیل چې د ارسبز قبیلې پنځلس زرو ګډو نه چې څومره ګډې راوستې شئ هغه راولئ. ما خپل لښکر بیا په دریو حصو کښې تقسیم کړو. د هراول کمان ما شمس الدین خان د سردار امین محمد خان زوي له ورکړو بې قاعدې پیاده فوځ او د رسالې یوه حصه سره د څلورو توپو ما په قلب کښې مقرر کړه او په دریمه حصه کښې ټوله توپخانه او باقیمانده پلټن او، دریمه برخه د رسالې شامله وه هغه سل سوارۀ چې ما د ګډانو د راوستو دپاره لیږلي وو هغوي ما سره د خواجه چنګل کلې په خوا کښې یو ځاے شول. د تالیخان خلقو چې دا ولیدل چې مونږ ناساپې راروان شو نو هغوي زمونږ په شا پنځۀ شپږ زرو سورو سره تعاقب وکړو. ولې هغوي په مونږ باندې د حملې کولو زړۀ ونۀ کړو. د هغوي د تعاقب ختمولو دپاره ما یوې پلټنې ته حکم وکړو چې د لارې په خوا کښې په یو سمسته کښې چې یو زر ګزه وړده وه ځان پټ کړئ او څۀ وخت چې باغیان د هغوي په خوا کښې تیریږي نو په هغوي دې ډزې وکړي. هر کله چې زما د حکم په تعمیل کښې په هغوي ډزې وشوې نوزما د فوځ وروستو سړو په هغوي د مخامخ نه حمله وکړه او دغه شان د باغیانو سوارۀ د مخ او د شا نه راګیر شول او وتښتیدل. چا خو ځان سیند ته وغورځولو او څوک زمونږ د ګولو نه د بچ کیدو دپاره د غرونو سوکو ته وختل. په دې طریقه د باغیانو څلور سوه تنه ضائع شول. د دې نه پس مونږ خان اباد ته روان شو او ماښام وخت چې مونږ پورې وتو نو مونږ نه یوه توپه سیند کښې پریوته. چونکې د سپاهیانو نه هغه توپه را ونۀ وتله له دې کبله زۀ پخپله د اس نه کوز شوم او یو څو تنو سپاهیانو سره مې توپه د سیند نه بلې غاړې ته راوویسته. چونکې زما جامې لوندې شوې وې اوما ټول فوځ جامو بدلیدو ته نۀ شو پریښودې له دې کبله سپاهیانو اورونه بل کړل او خپلې جامې مو پرې وچې کړې. قریباً دوه بجې څۀ وخت چې مونږ خان اباد ته رانزدې کیدو نو مونږ د ډزو اوازونه واوریدل او داسې معلومیده چې زما د ترۀ د کیمپ نه راځي. سردار شمس الدین ماته ووې چې دا توپې ماته د ازبک سورو ښکاري او معلومیږي چې هغوي ستا د ترۀ کیمپ تالا کړو له دې کبله مونږ له کابل ته تښتیدل پکار دي ما ورته په

جواب کښې ووې چې ما د خلقو د خلو نه ستا د بهادرۍ ډېر تعریف اوریدلے وۀ چې کومه تا په 1257هجري کښې د انګریزانو برخلاف په میدان جنګ کښې ښودلې وه . اوس ستا هغه بهادري څۀ شوه، په دې هغه چپ پاتې شو. بیا ما شپږ سوارۀ خپل ترۀ څخه راواستول او ورته مې ووئیل چې ما ستا د کیمپ د طرف نه ډزې اوریدلې دي له دې کبله زۀ هم په هغه ځاے کښې وډریږم چې کوم ځاے کښې یم لیکن په هر طرف چې تۀ ماته د تلو حکم کوے نو په هغه طرف جنګ کولو ته تیار یم. په یوه ګینټه کښې زما سرے واپس راغلو او دا خبر ئې راوړو چې زما ترۀ په دې خوشحالۍ کښې توپې خلاصولې چې د بخارا بادشاه د بوساګا نه په دریائے آمو پورې وتو او وتښتیدو.

دغه وخت زما د پلار یو نوکر چې یو بهادر او تجربه کار سړے وۀ او په میدان جنګ کښې خالص مشرے وۀ نوم ئې غلام علي خان وۀ هغه د دریائے آمو د سرحدي محافظې دستې مشر وۀ او په هژده نهر کښې د دریو نهرونو ګورنر وۀ. دې دغه وخت کرکي او بوساګا ته د سرحد د معائنې دپاره تللے وۀ. دغه ځاے کښې هغۀ د شاه بخارا دوه زره سورو سره مخامخ شو او سمدستي ئې په یو بل ډزې شروع کړې. د معمولي جنګ نه پس دا سړي د میر مظفر کیمپ ته وتښتیدل. میر خو پخپله بخارا ته وتښتیدو او د خپل مال اسباب یوه حصه ئې او څۀ خیمې ئې وروستو پریښودې. دا سامان ټول غلام علي له په لاس ورغے، سامان غلام علي په سپاهیانو تقسیم کړو او خیمې ئې زما پلار له واستولې. په دې نیک خبر زۀ سمدستي خپل ترۀ له روان شوم او زمونږ د دواړو په خوش قسمتۍ باندې ما هغۀ له مبارکباد ورکړو. په بله ورځ د هغۀ په اجازت ما دوه پلټنې، یوه رساله دوه توپې او پنځۀ سوه بې قاعدې سپاهیان تالیخان ته په دې غرض واستول چې د هغه ځاے خلقو ته دا معلومه شي چې مونږه د تالیخان قبضه لا پریښودو ته تیار نۀ یو. ما هغوي ته دا پیغام هم ولیږلو چې د بدخشان خلقو کۀ بیا ورانے وکړو نو زۀ به سمدستي سره د کومکه بیا در رسم.

په دې منځکښې زۀ خان اباد کښې پاتې شوم چې د فوځ تنظیم وکړم ځکه چې پنځۀ میاشتې پورې ما خپل فوځ نۀ وۀ لیدلے. هرکله چې د تالیخان خلقو ته معلومه شوه چې د کوم فوځ نه هغوي اوس اوس خلاص شوي وو هغه بیا واپس راغے او د پښتنو د حکومت نه هیڅ خلاصے نشته نو هغوي د میر شاه ترله زما ترۀ له په نکاح کښې ورکړه او هغۀ دا نکاح په ډیرې خوشحالۍ سره قبوله کړه. زۀ د دې وادۀ نه سخت برخلاف وم او ما د دې دغاباز قوم سره د دوستۍ د نقائص په حقله ډېر دلائل بیان کړل بلکې ما خپل ترۀ نه اجازت وغوښتو چې زۀ بدخشان په زور اخستل غواړم د دې دپاره چې د داسې بې اعتباره دشمن یا نام نهاد دوست نه ځان خلاص کړم چې هغه همیش دپاره زمونږ په سترګو کښې ازغے وۀ لیکن زما ترۀ یوه خبره هم وانۀ وریده او د خپلې کویژدنې متیائي ئې وخوړه.

زهٔ بیا تخت پُل ته راغلم او یو کال ما د هغه ځایے د فوځ په تنظیم کښې ولګولو او بیا په مخکښې سپرلي کښې زهٔ قطغن ته واپس شوم. په لاره ما سره یوه عجیبه واقعه وشوه په یو پړاؤ کښې چې د هغې نوم قزوي نار وهٔ (چې د هغې معنیٰ د جینکو د لوبو ځایے دے) زهٔ په خوا کښې یوې غونډۍ ته چې هغه ځایے کښې زمونږ دپاره د باربرداری ښاروو ښر کولو، د ګرځیدو دپاره لاړم، اتفاق سره زما سپاهیان زما نه خطا شول او یو ځنګلي اوښ په ما حمله وکړه، ما سره بغیر د یوې چړې نه بله هیڅ وسله نهٔ وه له دې کبله ما د یو لوړے ګټ نه چارچاپیره دؤ وهل شروع کړل. اوښ هم ما پسې د ګټې نه چاپیره دؤ وهلو تر دې پورې چې زهٔ ډیر ستړے شوم او چونکې زما یو سپاهي هم په نظر رانغلو نو زهٔ مجبور شوم چې د خپل ځان د بچاؤ دپاره ودریږم او د اوښ مقابله وکړم. بیا مې یوه ګټه راواخسته او څومره چې زما نه کیدے شوه په هغه هومره زور مې هغه په غوږ وویشتو په دې باندې هغه په زنګنونو راپریوتو اوچې بیا ئې ځان پاڅیدو ته جوړولو نو ما چاړهٔ راوویسته او حلال مې کړو او ټولې وینې په ما راپریوتې، اوښ چې ما په مړ کیدو ولیدو او چونکې ستومانه هم وم نو زهٔ بیهوشه شوم. معلومیږي چې زهٔ به یوه ګینته بیهوشه وم . چې زهٔ په هوش شوم نو زهٔ ډیر خوشحاله شوم چې اوښ مې مړ ولیدو. د دې په سزا کښې چې سپاهیانو زما په حقله ډیر غفلت کړے وهٔ ما حکم وکړو چې هر یو له دې دیرش بینته ورکړې شي. او دا یوه قاعده مې جوړه کړه چې هر کله زهٔ په خپل داسې ذاتي کار پسې روان شم چې باډي ګارډ پریښودل زما دپاره ضروري شي نو دوه یا درې اعتباري سړي دې زما په خوا کښې موجود وي.

په قطغن کښې فوځ زما په راتلو ډیر خوشحاله شو او ما سپاهیانو ته د خپل پلار د طرف نه دا پیغام واؤرولو چې زهٔ تاسو ټولو ته د خپل اولاد په شان ګورم او زما تاسو سره هغه پدري محبت دے لکه څنګه چې مې عبدالرحمٰن زوي سره دے. په دې هغوي د خوشحالی نه چغې وویستې او وې وئیل مونږ کښې به هر یو کس خپل ځان د خپل پلار سردار محمد افضل خان دپاره قربان کړو ما خپل ترهٔ ته هم د خپل پلار سلامونه او د مهربانی پیغامونه ورکړل. د هغې نه پس زهٔ خپل کور ته لاړم. هلته فوځ زما ډوډۍ کړې وه او زما په عزت کښې ئې آتش بازی خلاصې کړې. په بله ورځ زهٔ حسب معمول د میخزینونو انبار خانو او د توپخانو ځایونو ته د معائنې دپاره لاړم او د خدایے شکر مې وکړو چې هر یو څیز په ښهٔ حالت کښې وهٔ. په بله ورځ ما د فوځ د یو لوړے پریډ معائنه وکړه.

د یوې هفتې د قیام نه پس زهٔ د تالیخان د معائنې دپاره لاړم. هغه هم په ډیر ښهٔ حالت کښې وهٔ. میران بدخشان چې زما د راتلو نه خبر شول نو هغوي ما له شپږ ښکلي غلام بچه ګان، نهٔ اسونه سره د سپینو زرو د قیزو او زینونو، نهٔ ګوډې د شهدو، پنځهٔ بازونه او دوه ښکاریان سپي په طور د تحفې راولیږل. د دې په عوض کښې ما میرانو له خلعتونه او نورې

تحفې وليږلې. او يوه چيټهى مې هغوي له د دې خبرې د يادګيرنې دپاره وليږله چې هر کله زهٔ په ورروستي بار په تاليخان کښې وم نو تاسو ما سره د ځنې کانونو د قبضې راکولو وعده کړې وه چې يو د فيروزې (تهوپاز)، پنځهٔ د سرو زرو، يو د لاپس لازولي Lapis Lazuliاو يو د Malachiteاو نور کانونه وو. مګر زما د ترهٔ نه په دريافت معلومه شوې وه چې هغوي لا تراوسه دا کانونه هغهٔ ته نهٔ وو حواله کړي. زما چيټهى چې هغوي ته ورسيده نو هغوي ماته په دې کانونو باندې د قبضې کولو اختيار راکړو. چنانچه ما په هغې قبضه وکړه او بعضې ډېر قيمتي کاڼي مې سره د نورو تحفو پلار ته وليږل بيا زهٔ د خپل پلار په حکم د يو عرصې دپاره ايبک ته لاړم او د هغه ځاے نه بلخ ته. په دې منځکښې زما ترهٔ د کرمې او د خوست حاکم مقرر شو او سردار عبدالغياث د هغهٔ په ځاے زما پلار مقرر کړو. څهٔ موده پس زما پلار زهٔ په خان اباد کښې د فوځ ګورنر جنرل مقرر کړم. زهٔ چې هلته ورسيدم نو په ملک کښې اړے ګړے وهٔ د ښار هر يو حاکم د خپلې خپلې ضلعې ټوله ماليه خوړلې وه او سردار عبدالغياث خان مرحوم ته هيڅ پته نهٔ وه چې څهٔ کيږي. ځکه چې هغهٔ د ګورنرۍ په نسبت زيات تر د ډاکټرۍ کار کولو او خلقو له به ئ نسخې جوړولې. ماته دا پته هم ولګيده چې په ورروستني کال کښې د اتو مياشتو او په روان کال کښې د څلورو مياشتو تنخواه چا نهٔ ده ورکړې. زما وړومبے کار دا وهٔ چې ماليه مې ټوله کړه او د ټولو حاکمانو نه مې بقايې وصول کړې او سپاهيانو له مې خپلې تنخواه ګانې ورکړې. د دوه پلټنو او د څلورو سوؤ سورو افسران چې په خان اباد کښې زما د پلار د طرف نه مقرر شوي وو دا شان سړي وو چې هغوي د سردار مرحوم د غفلت نه فائده وچته کړې وه او د علاقې ماليه ئ پخپله وصول کړې وه او پخپله ښيګړه ئ راوستې وه. زما په راتلو د هغوي کار وران شو او ډير سخت په قهر شول هغوي وړومبے کار د بدل دا وکړو چې فوځ ته ئ د بغاوت او کابل ته تښتيدو لمسه وکړه. زما د ترهٔ زوي مير عزيز چې په کابل کښې وهٔ او د خپل پلار د فوځ براے نام مشر وهٔ د يوولسو کالو هلک وهٔ او په دې سبب د خپلو اتاليقو او د سرپرستانو د اثر لاندې وهٔ او هغوي د دې پلټنو او سورو د افسرانو سره ملاؤ وو. دې سړو د سپاهيانو په زړهٔ کښې دا خبره واچوله چې دا ملک خو ټول د عظيم خان زما د ترهٔ دے او د عبدالرحمٰن حکومت او اطاعت قبلول زما بيوقوفي ده له دې کبله مونږ ټولو له کابل ته د خپل مالک زوي سره تلل پکار دي.

د دې ټولو خبرو لوے اثر د دې جاهلو سپاهيانو په زړهٔ وشو او دې سره مونږ له د خپل نيکهٔ د مرګ خبر هم راغے. په دې افسوسناک خبر د دې دوؤ پلټنو او رسالو سپاهيان زيات زړور شول او زما د کور نه رلتاؤ شول. او په لويو ګټانو ئ زمونږ د کور د دروازو د ماتولو کوشش وکړو په دې زما فوځ راووتلو او سمدستي ئ باغيان تس نس کړل. دا باغيان بيا کابل ته لاړل. ليکن د هغوي نمک حرام افسران چې چا هغوي دې بدکار ته مائل کړي

وو هغوي دې سپاهيانو سره ملګري نهٔ شول. د دريو ورځو د انتظار نه پس دې سپاهيانو زړهٔ بائلو او ماته ئ د معافى يوه چيټئ وليکله او وې ليکل چې زمونږ افسرانو مونږ له دوکه راکړې ده ما ورنه په جواب کښې د هغه خلقو نومونه دريافت کړل چې چا هغوي ته د بغاوت کولو لمسه کړې وه او هر کله چې هغوي ماته دا نومونه وښودل نو ما ټولو سره د معافی ورکولو وعده وکړه هغوي ماته د دې خلقو فهرست چې په هغې کښې اتهٔ کپتانان لو نائب لفټيننټان او د فوځ کمانډنټان شامل وو او په اخر کښې د محمد عزيز د سرپرستانو او د اتاليق نوم وليکلو. او وې ليکل چې دې خلقو په قرآن قسم خوړلے وهٔ چې دوئ ټول به ستا برخلاف يوه ډله کيږي. د دې نه پس ما ټول سپاهيان خو معاف کړل ليکن اتهٔ کپتانان مې په توپه کښې والوځول. کمانډنټان مې ډس مس کړل ځکه چې هغوي زما د ترهٔ غلام بچه ګان وو په دې طريقه ملک کښې امن قائم شو.

څهٔ وخت چې زما د ترهٔ خبر مير اتاليق ته ورسيدو، هغهٔ خپل زوے سلطان مراد خان قطغن ته د خلقو راپاڅولو دپاره راواستولو. ما د فوځ يوه مضبوطه دسته چې په هغې کښې درې پلټنې، دولس توپې، يو زر د رسالې سوارهٔ، دوه زره بې قاعده پياده د سردار محمد عالم خان او سردار غلام خان د سالارئ لاندې د باغيانو د سرکوبئ دپاره مقرر کړل. زما دا نيت وهٔ چې زهٔ په باغيانو باندې د شور آب په لاره د نرين په مقام حمله وکړم مګر د بدقسمتئ نه اول سر کښې يوه حادثه پيښه شوه د سردار محمد عالم دا خوئ وهٔ چې هغه به هميش د خپل فوځ نه وړاندې دوؤ سوؤ سورو سره روان وهٔ. څو ځله مونږ هغهٔ له تنبيه ورکړې وه چې دا ډير غلط کار دے چې يو لوے افسر خپل ځان دا شان خطره کښې واچوي او د ځان نه مخکښې ايډوانس ګارډ نهٔ ليږي. دغه شان يوه ورځ د قطغن دوؤ زرو سورو چې چاپيره په غونډو پټ ناست وو په هغهٔ حمله وکړه د عالم خان سرې چې د باغيانو د شمار نه خبر شول نو وتښتيدل. مګر چونکې سردار پخپله د اطاعت د منلو عادت نهٔ وهٔ هغهٔ يو څو زړورو سرو سره مقابله شروع کړه او تر هغې پورې وجنګيدو چې ټول ټکړه ټکړه شو. هر کله چې د دې خبر باقي فوځ ته وشو نو د رسالې يوې دستې باغيانو پسې ورودانګل او قبل د دې نه چې هغوي د سردار نعش ځان سره وړے وے، هغوي سره ئ سخت جنګ وکړو او د قطغن سړو له ئ شکست ورکړو. باغيان نرين طرف ته وتښتيدل او درې سوه مړي او زخميان ترې پاتې شول.

د دې جګړې په بله ورځ د نرين په مقام يو لوے جنګ وشو چې شلويښت زره باغيان په هغه ځاے راجمع شوي وو د نمرخاتهٔ نه جنګ شروع شوے وهٔ او ناوخته مازيګر پورې جاري وهٔ اخر کار دشمن وتښتيدو ولې هغوي ډيره په بهادرئ جګړه وکړه او پرله پسې ئ تازه حملې وکړې، زما نقصان د هغوي په مقابله کښې ډير معمولي وهٔ، صرف ديرش سړي

زمونږ نه مړهٔ او زخميان وو چې په هغوي کښې سردار محمد عالم خان هم شامل وهٔ. زمونږ د کم نقصان وجه دا وه چې زمونږ فوځ په ښهٔ ترتيب کښې جنګيدلے وهٔ او چونکې دشمن د جنګ د هنر نه ناواقفه وهٔ هغوي ټول يو ځاے راجمع شوي وو له دې کبله زمونږ توپو هغوي ته ډير زيات نقصان ورسولو. هغه ورځ زهٔ د خپل فوځ نه بيحده ډير خوشحاله شوم په کومه طريقه چې هغوي جنګ کړے وهٔ هغه قابل تعريف وهٔ. او صرف هغه خلق د دې قدر کولے شي چې چا ته پته وي چې دومره بيشماره سړې په چا حمله وکړي او بيا هغه زړهٔ بائے نلي. په داسې دشت بيابان بانډې د څلويښتو زرو سړو راښکاره کيدل دا شان معلوميږي لکه يو غر راروان وي. زما يو مخبر چې ما قطغن ته د خبرونو راکولو دپاره ليږلے وهٔ هغه سلطان مراد خان قيد کړو. هرکله چې زما د فتحې خبر قطغن ته ورسيدو نو هغه راخلاص شو او په يو اس سور شو او نيغ ما له راغے مګر په رارسيدو هغه بيهوشه شو. هرکله چې هغه په هوش کښې شو هغهٔ ما ته ووې چې زما د قيد په زمانه کښې به ما هره ورځ څلويښت بينتونه خوړل، د دې په ثبوت کښې ډاکټرانو ماته ووئيل چې د دې سړي بدن لکه د سکور په شان تور شوے دے.
هغهٔ ماته ووې چې د قطغن ټول سړي او ټبرې د خپل ځان د حفاظت دپاره ملک پريښودو ته تيار دي. ما سمدستي نائب غلام خان دراني يو ډير هوښيار (ليکن سست) سړے وهٔ سره د رسالې او توپخانې د دې غرض دپاره واستولو چې هغه د تنګي درې په خلهٔ کښې په لاره کښې کښيني. د دې دپاره چې څهٔ وخت دغه خلق بدخشان ته ځي نو چې دې فوځ سره مخامخ شي. د تاليخان پلټنې ته مې حکم وکړو چې دې فوځي دستې سره ملګرے شي.
هر کله چې ما د هغوي لار ونيوه نو ما د قندوز قاضي د شوراب په لاره بانډې د بدخشان دوؤ دريو سړو سره چې په خپل قوم کښې ډير هردلعزيز او د ښهٔ شهرت خاوندان وو وليږلو. دې سړو له ما چيټي د هغوي په نوم ورکړې او ټولو باغيانو سره مې د معافي وعده وکړه هرکله چې هغوي ته معلومه شوه چې مونږ ته لار نيولې شوې ده او تيښته ناممکن ده او هرکله چې هغوي دا هم وليدل چې زما د فوځ مقابله هغوي نهٔ شي کولے او د دې نه علاوه چونکې د هغوي زما په وعدو چې کومې ما د ميرانو او د مليانو په ذريعه هغوي سره کړې وے پوره تسلي وه په دې سبب هغوي زما نه د معافي غوښتو دپاره راغلل. په جواب کښې ما يو اعلان جاري کړو چې زهٔ به د دې بغاوت نه په دوؤ شرطونو درګذر وکړم. وړومبے شرط دا وهٔ چې هغوي دې د خداے تعالىٰ او د هغهٔ د رسول محمد صلي الله عليه وسلم په نوم ما سره لوظ وکړي چې هغوي او د هغوي اولاد به د حکومت افغانستان وفادار وي او هغوي به هيڅرې هم د خپلو ميرانو او مشرانو په لمسه د دې حکومت برخلاف بيا څهٔ کار نهٔ کوي. دويم شرط دا وهٔ چې هغوي دولس لکه روپۍ جرمانه ورکړي.
د لږ ساعت نه پس ما له هغوي جواب راکړو چې مونږ ته دا شرطونه بالاتفاق منظور

دي او دا ئ هم ووئيل چې مونږ به همیش ستا او ستا د اولاد وفادار يو او هميش به ستا د دشمنانو برخلاف او ستا په نوکرۍ کښې ځان ورکولو ته تيار يو. هغوي د دې شکريه هم ادا کړه چې ما هغوي ته د هغوي د مال پريښودو اجازت وکړو چې په هغې کښې د دوۀ کروړو روپو اوښان او اسونه وو. دا عهدنامه ما خپل پلار ته واستوله او ټول خلق په امن و امان زما په حکومت کښې اباد شو. زما ورومبے کار دا وۀ چې پنځلس لکه روپۍ د ماليې بقايا وصول کړم او د هغې نه د فوځ تنخواه ادا کړم.

په دغه ورځو کښې د بدخشان يو څو د کپړو سوداګرانو ماله ډير تکليف راکړو کومو سوداګرو به چې د بدخشان او د قطغن په منځکښې سوادګري کوله د هغوي دا دستور وۀ چې هغوي به په هفته کښې په مخصوص ورځو د دې دوارو ځايونو په منځکښې په اسونو سفر کولو او دا معلومه شوې وه چې د ډيرې مودې نه په دې مخصوص ورځو د مرو سرو نعشونه ليدلي شوي وو د دې قتلونو د تدارک دپاره ما يو څو سپاهيان دلارې د حفاظت دپاره مقرر کړل ولې دا مې ورته ووئيل چې تاسو ځان مۀ ښکاره کوئ او څۀ سوارۀ مې هم په سپينو جامو کښې ولګول چې تاسو په دې لار اخوا ديخوا ګرځئ. او دا هدايات مې ورکړل چې کۀ چرې په تاسو حمله وشوه نو تاسو سپاهيانو ته اشاره وکړئ. يوه ورځ هم دا چل وشو څرنګ چې ما غوښتل يعنې دا چې د بدخشان سوداګرانو په دې سور حمله وکړه او هغوي خپل يو سور په تيز اس دې سپاهيانو ته د خبر ورکولو دپاره ولیږلو دا سپاهيان په پوره موقعې ته راورسيدل او پنځوس سوداګر ئ ونيول او ماله ئ راوستل ما د هغوي وسله، زينونه او قيزې په سورو تقسيم کړې د هغوي اسونه مې توپخانې له ورکړل او کومې لس زره روپۍ چې د هغوي نه برامد شوې هغه ما سرکاري خزانه کښې ضبط کړې. زما په دريافت هغې سرو اقبال وکړو چې د تيرو دوۀ کالو راهسې مونږ لارې شوکولې ځکه چې مونږ ته پښتانۀ يو سپک قوم ښکاريدو اګرچې دې سرو ما له دوه زره روپۍ سر راکولې ليکن ما هغوي په توپو کښې والوځول. ځکه چې هغوي د بيګناه خلقو برخلاف ډير ظلمونه کړي وو. دا سزا هغوي له ما د ميلې په ورځ ورکړه د دې دپاره چې د هغوي غوښه د کيمپ د سپو خوراک شي او د هغوي هډوکي د ميلې تر ختميدو پورې په زمکه پراتۀ وي. هرکله چې د دوئ نعشونه ښخ شول نو مير جهاندار شاه د بدخشان مير يو سړے د هغوي د مرګ نه په بې خبرۍ کښې راواستولو او ماله ئ د هغۀ د طرف نه يوه چيټۍ راکړه چې په هغې کښې زما نه تپوس کړے وۀ چې تا دومره جرأت ولې کړے دے چې زما سړي دې ګرفتار کړي دي او ما ته ئ سوال کړے وۀ چې دا سړي ماته د دې چيټۍ په دررسيدو حواله کړه او کۀ دا دې ونۀ کړل نو زۀ به ستا پلار او ترۀ ته چيټۍ وليکم چې عبدالرحمٰن د بدخشان خلق زما برخلاف راپاڅوي حالانکې زۀ ستاسو رښتونے دوست يم. ما دا چيټۍ په زوره په دربار کښې ولوسته او د هغه سړي نه مې تپوس

وکړو چې میر جوړ وه او په هوش کښې وه چې څه وخت هغه دا چیټی لیکله. هغه راته په دې الفاظو جواب راکړو زما بادشاه میر صاحب ماته دا حکم راکړے دے چې زه دا قیدیان هغه له فوراً بوځم او که نه وي نو هغه به سمدستي ستا برخلاف څه قدم وچت کړي. د دې په جواب کښې ما هغه ته ووئیل غصه کیږه مه او یو ساعت فکر وکړه. مګر هغه د اوریدلو نه انکار وکړو او بیا ئې په ډیرې بې ادبۍ سره ووئیل قیدیان ماته حواله کړه تا کښې دا جرأت څنګه کیدے شي چې ته زمونږ سړي قیدیان کړې. بغیر د دې نه چې زه هغه سره خبرې وکړم ما خپلو نوکرانو ته حکم وکړو چې د دې سړي نه ږیره او بریت وباسئ او د دوه وروځو له د ښځو په شان رنګ ورکړئ. بیا ما هغه ځاے ته بوتلو چې کوم ځاے کښې د سوداګرو نعشونه پراته وو او د هغه ږیره بریت مې یوه تیله داره ټکره کښې واچول او ورته مې ووئیل چې دا خپل میر له یوسه چې بیا داسې نه کوي. او دا د هغه د چیټئ جواب دے چې کومه هغه ماته لیکلې ده. دې سړي سره ما یوه مضبوطه فوځي دسته چې په هغې کښې دوه پلټنې، دوه زره د رسالې سوارهٔ، زر تنه ازبک سوارهٔ، دوه زره پیاده او دولس توپې د محمد زمان خان او د سکندر خان د کمان لاندې سره د نائب غلام احمد خان تالیخان ته ولیږلې. هرکله چې هغوي تالیخان ته ورسیدل نو دې کمانډرانو دا سړے سره د خپل جوابهِ میر جهاندار شاه له ولیږلو. هغه دا سړے ښه وکنځلو او ورنه ئې تپوس وکړو چې ولې بغیر د قیدیانو نه راغلې دې سړي ورته خپل مخ بربنډ کړو او هغه تیله داره ټکره ئې د میر په پښو کښې وغورځوله او ورته ئې ووئیل دغه نتیجه وه ستا د دې بې وقوفۍ د پیغام وړلو چې کومه ماله راکړې شوه. میر په دې سلوک ډیر خفه شو او خپل فوځ ته ئې حکم وکړو چې فوراً د خان اباد په لورې روان شي لیکن څه وخت چې هغه ته پته ولګیده چې د پښتنو فوځ په خواکښې پروت دے او په ټول ملک ئې قبضه کړې ده او خلق ئې رعیت کړے دے نو میر وارخطا شو او زړه ئې بائلو. په ځاے د دې چې د هغه سردارانو هغه له تسلي ورکړې وے هغوي هغه ته ووئیل ستا پلار د دې خطرناک سړي نه ځان په دې خلاص کړو چې خپله لور ئې د هغه تره له ورکړه. ته بیوقوف وے چې تا هغه له دا شان ګستاخانه پیغام ولیږلو. میر په جواب کښې ووئیل تاسو زما د پلار مشیر کار ئې نو ماته وښیئ چې زه څه وکړم په دې هغوي ټولو جرګه وکړه او دا صلاح ئې ورکړه چې د میر ورور دې سره د شلو سردارانو څلویښت وینځو او څلویښت غلام بچو د عبدالرحمٰن سلام له لاړ شي او ځان سره دې د چین د ریښمي کپړو، قالینونو او چیني لوښو تحفې یوسي. او میر جهاندار شاه دې د معافۍ یو خط هغه ته ولیکي. یا دې ورله خپله لور او یا د تره لور په نکاح کښې ورکړي. په دې چل به میر خپل سلطنت او خپل ځان د میر اتالیق د قسمت نه ځان خلاص کړي. د میر چونکې بله لار نه وه له دې کبله هغه مجبور شو چې د خپلو سردارانو په مشوره عمل وکړي. چنانچه هغه سمدستي معافي نامه او تحفې ماله راواستولې او زما افسرانو

تـه ئ خـط ولـيكلو چې د خدای دپاره نوره کارروائي تر هغې پورې ملتوي کړئ چې تر کومه زمـا ورور خـان ابـاد تـه نـهٔ وي رسيـدلے. او تـاسو ته مزيد هدايات نهٔ وي در کړے شوے. زما افسـرانو ته دا خط د بدخشان په علاقه کښې د ګلوګند په مقام موصول شو چې دغه ځاے ته هـغوي پـه دريـو ورځـو کښې رارسيدلي وو. هغوي په دغه مقام حصار شول او ماته ئ د دې ټولې خبرې رپورټ راواستولو. د مير شاه ورور په خپل وخت ما څخه سره د دريو نوکرانو او سـره د هغه چيټئ راورسيدلو چې په هغې کښې هغهٔ د خپلې روېې دپاره دا عذر پيش کړے وهٔ چې زهٔ هـميشـه په نشه کښې يم او ماته هيڅ پته نهٔ وي چې زهٔ څهٔ کوم. په دې عذر زهٔ مسکے شـوم او مـا د هـغـهٔ سـردارانو تـه ووې چې دا معافي نامه بالکل ناکافي ده. چونکې د خان اباد خـلقو سره زما ورانه نهٔ وه له دې کبله ما دې قاصدانو سره د مهربانئ سلوک وکړو او هغوي سـره مـې دمير د معافئ اقرار وکړو. ما هغوي له خلعتونه ورکړل ليکن د مير شاه وريرې سره مـې د وادهٔ نه انکار وکړو او دا مې ورته ووئيل چې چونکې د هغهٔ يوه لور زما په ترهٔ وادهٔ ده نو دا خپـلوي زمـونږ پـه منځکښې کافي ده. په دې طريقه د بدخشان تکليف د څهٔ وخت دپاره ختم شو.

پـه دې ورځـو کښـې يـوه عـجيبه واقعه يا الهام ماته پيښ شو چې د هغې ليکل زهٔ دلته مـناسب ګـنم. او په دې خوشحاليږم چې په تحرير کښې ئ راولم. يوه ورځ زهٔ په خپل دربار کښې ناست وم نو ماله يوه چيټئ د امير عظيم دلور د طرف نه چې په کابل کښې وسيده اوما سـره ئ کـوژدن شـوې وه راورسيـده. هـغـې خپل قاصد ته دا وئيلي وو چې دا چيټئ صرف د عبدالرحمٰن خان په لاس کښې ورکړه او ورته ووايه چې بل چا ته ئ نهٔ ښيي او د هغې جواب دې هـم هغه پخپله وليکي او سر بمهر دې راوليږي. لکه څنګه چې ما وړومبے بيان کړے دے زهٔ د ليکلو او لوستلو بالکل شوقين نهٔ وم او څهٔ لږ ډير چې ما وړومبے زده کړي وو هغه هم زما نـه هيـر شـوي وو. تـاسو پخپله فکر وکړئ چې زهٔ به څومره د دې خط په راتلو مايوسه شوے وم. زمـا زړهٔ پـه درزيـدو شـروع شـو او ما خپل ځان ډير ملامته کړو چې يو طرف ته خو زهٔ دا فـخـر کـوم چې زهٔ يو ډير نفيس سړے يم ليکن بل طرف ته داسې بې غيرته يم چې انپړه يم. په هـغـه شپـه چې زهٔ اودهٔ کيـدو تـه لاړم نـومـا پـه زار زار وژړل او خـداے پـاک تـه مې په ډيرې عاجزئ سوال وکړو او د اولياؤ د ارواح نه مې د ځان دپاره د سفارش منت وکړو ما دعا وکړه "اے زما خدايه زما زړهٔ ته يوه رڼا راواستوه او زما زړهٔ منور کړه چې زهٔ ولوستې شم او وليکلے شم. تـهٔ مـا د خـپـل مخلوق په ستړګو کښې مهٔ شرموه." اخر کار زهٔ په ژړا ژړا ستړے شوم او سـحـر سـحـر کښـې اودهٔ شـوم په خوب کښې مې يو بزرګ سړے وليدو چې ما له راغے هغه ميـانـه قد او د سم قامت سړے وهٔ بادامي سترګې، ښکلې وروځې، وږده ږيره او مزيداره وږده څهره او نـرې وږدې ګوتې ئ لرلې. يو خاکي پټکے د هغهٔ په سر وهٔ او د کرښې دارې کپړې

لنګ ئ وهلے وۀ. يوه وړده همسا هغه سره وه چې د هغې په بيخ کښې د وسپنې يوه ټکړه لګيدلې وه. دا شان معلوميده لکه چې هغه زما سر ته ولاړ وي او په نرم اواز ماته وائي عبدالرحمنه پاسه ليکل وکړه. زۀ د خوبه راولويدم او چې مې هيڅوک خپل سر ته ونۀ ليدل نو بيا اودۀ شوم بيا هم هغه سړے ماته حضور شو او ماته ئ ووې زۀ درته وايم چې وليکه او تۀ اودۀ کيږې. زۀ فکرمند شوم او بيا راويښ شوم نو چې وۀ مې کتل نو هيڅوک نۀ وو. زۀ بيا اودۀ شوم دريم باره دغه بزرګ سړے بيا ماته حضور شو او په خفګان ئ راته ووې کۀ چرې تۀ بيا اودۀ شوې نو په دې سينه به دې په خپله نيزه ووهم په دې زۀ ويرې واخستم او راپاڅيدم. ولې بيا اودۀ نۀ شوم. ما خپلو بچه ګانو ته اواز وکړو چې قلم او کاغذ ما له راوړئ او بيا مې هغه زاړۀ ټکي راپه ياد کړل چې کوم به ما په سکول کښې ليکل او د خدائے پاک ناليدلې طاقت زما د زړۀ په مخکښې د هغه ټولو ټکو تصويرونه پړله پسې راښکاره کړل. زما ذهن ما سره د هغه ټولو ټکو د يادولو امداد وکړو. چې کوم ما چرې لوستلي وو او ما په کاغذ وړومبے يو ټکے او بيا بل ټکے لوستل شروع کړل. په دې طريقه ما د نمر ختو نه وړومبے د شپيتو يا د اوياؤ کرښو يو خط وليکلو، بعضې حروف د يو بل سره جنګيدلي هم نۀ وو او بعضې حروف په مشکله پوره ليکلي شوي وو ولې څۀ وخت چې ما دا چيټۍ ولوسته نو ماته معلومه شوه چې زۀ هغه ټوله لوستے شم او ما په هغې کښې ډيرې غلطۍ هم بيامونډې. دا چيټۍ ما وشلوله او بيا مې وليکله او دومره خوشحاله شوم چې په جامو کښې نۀ ځائيدم. هغه سحر چې زۀ پاڅيدم نو ما يوه يا دوه چيټۍ چې کومې ګورنرانو ته ليکلے وے پرانستې او هر کله چې زۀ پوهه شوم چې زۀ د هغو چيټو په مضمون باندې پوهيږم نو زما خوشحالي لس چنده زياته شوه. هر کله چې دربار ته د ټلو وخت راغے نو زما سر کاتب چې د چا په ذمه دا کار وۀ چې زما چيټۍ به ماته لولي حسب معمول ماله راغلو ولې ما هغۀ ته ووئيل چې زۀ به خپلې چيټۍ نن پخپله لولم. او تۀ به زما غلطۍ صحيح کوے. هغه مسکے شو او ماته ئ ووې چې مګر آنحضرت خو لوستے نۀ شي. په دې باندې ما چيټۍ پرانسته او هغۀ ته مې ووې چې ګوره چې زۀ لوستے شم او کۀ نه. دا مې ووئيل او ما لوستل شروع کړل. او د هغې جوابونه مې تحرير کړل. دا رنګ مونږ قريباً دوه سوه چيټۍ ولوستې او د سلو مو جوابونه وليکل. څو ورځې پس ما ته د خپل سر کاتب د امداد حاجت پاتې نۀ شو. او خپلې کورنۍ چيټۍ ما خپله لوستې. او پخپله به مې جوابونه ليکل. څو ورځې پس ما قرآن مجيد لوستل شروع کړل او د اولياؤ او پيغمبرانو په نوم مې ډيرې روپۍ ورکړې. ما خپل پلار ته هم د دې غيبي امداد چې د هغې په ذريعه زۀ د لوستو او ليکلو قابل شوم ټول حال وليکلو. دا چيټۍ ما د خپل سرپرست په لاس واستوله او څۀ وخت چې زما پلار وړومبے زما په دې ټوله قصه شک وخوړو نو زما سرپرست هغۀ ته ووې ماته معلومه ده چې ستا زوے داسې هيڅ شے تا ته نۀ شي ليکلے چې هغه

• دروغژن وي هغه به په کوم مخ تاته مخامخ کیږي کۀ چرې هغه تاته دروغ ووائي. اخر کار زما پلار زما په خبره اعتبار وکړو هغۀ له ئ پنځۀ زره ټنګې (ټنګه د بخارا یوه سکه ده چې د څلورو انو برابر ده) او یو بیش بها خلعت ورکړو. ماله هغۀ د سرو زرو د دستې توره لس تیله دار څادرونه او څۀ ګرم شالونه راواستول. ما د خدایے حمد وکړو او خپل پلار ته مې د هغۀ د مهربانۍ د شکرېې خط ولیکلو.

د قطغن او د بدخشان د ملک فسادونه لا خوارۀ شوي نۀ وو چې د قولاب طرف نه راته مشکلات پیښ شو. د قولاب میر چې شاه خان ئ نوم وۀ دوه زره سوارۀ د دې غرض دپاره مقرر کړل چې د قطغن د خلقو دیارلس زره ګډې چې په ژمي کښې حسب معمول د دریائے آمو په غاړه څریدلې په زور بوتلې ما چې دا واوریدل نو دوه زره سوارۀ مې ولیږل چې دا ګډې راخلاصې کړي او خپل اصلي مالکانو ته ئ ورکړي ولې ډاکوان د دې سوررو د رسیدو نه وړومبے د دریائے آمو نه پوري وتي وو. زما سوارۀ چې په یو پایاب ځایے د سیند نه په اسونو پورې وتل په بله غاړه یو سخت جنګ وشو او د ډاکوانو نه پنځۀ سوه تنه مړۀ شول او ډیر ترینه قیدیان شو او ګډې راخلاصې شوې. زما سوارۀ هم هلته دیره شو او واپس نۀ شول. ځکه چې د هغوي دا طمع وه چې مونږ ته به نور امداد د قولاب د فتح کولو نه پس راورسیږي. ولې هرکله چې زما د پلار د طرفه مزید احکام را ونۀ رسیدل ما هغوي ته د واپسی حکم وکړو. ګډې ما اصلي مالکانو ته واپس کړې هغوي ماته شپږ زره ګډې پیش کړې ځکه چې دا د هغه ملک رواج وۀ چې هرکله حکومت د غلو نه څۀ مال راخلاص کړي دریمه برخه حکومت له ورکوي. ما د ګډو اخستو نه انکار وکړو خو د هغې په ځایے مې اتۀ زره مهران د هغوي نه واخستل چې په هغې کښې مې درې زره سپاهیانو له ورکړل او باقي ما خان سره وساتل. ما میر شاه ته ولیکل چې خبردار بیا داسې کار ونۀ کړې ګنې نو زۀ به قولاب درنه واخلم. میر ډیر عذر معذرت پیش کړو. تحفې ئ راواستولې او لوظ ئ وکړو چې بیا به هیچرې داسې نۀ کیږي. بیا ما دا ټول قیدیان په یو لک ټنګو چې د هغې نه پنځۀ زره پونډونه جوړیږي خرڅ کړل. او دغه شان مې لس زره پونډه په دې ټوله معامله کښې بچ کړل.

د دې نه پس دا ټول ملکونه د څۀ وخت دپاره بالکل په امن کښې پاتې شول او ما د خپل رسد رسانۍ په ښاروو کښې د دریو زرو ټټوانو او د دوۀ زروا وښانو زیاتے وکړو.

# دویم باب

**د امیر دوست محمد خان وفات کیدل او د شیر علي خان امیر کیدل، د امیر محمد افضل خان او د شیر علي خان تر منځه بې اتفاقي پیدا کیدل او د محمد افضل خان بندي کیدل، د عبدالرحمٰن خان بخارا ته روانیدل، او څهٔ مودې پورې د وسیدو نه پس د بخارا د بادشاه سره د دهٔ اختلاف پیدا کیدل او هم په دې سبب د بخارا نه واپس کیدل.**

اوس ماله پکار دي چې د لوستونکو توجه د هرات معاملاتو ته راکاږم. څهٔ وخت چې چې په دې ملک باندې مونږ حمله وکړه نو زما نیکهٔ دوست محمد خان ناجوړه وهٔ او سردار رشید علي خان د خپل پلار ډیر خدمت کولو لیکن چونکې د هغهٔ د نورو زامنو لکه سردار عظیم خان، امین او اسلم خپل میرني ورور سره ډیر نفرت وهٔ هغوي سلطان محمد گورنر هرات سره چې د امیر دوست محمد خان دشمن وهٔ سازشونه جوړ کړل په دې طریقه هغوي خپل پلار ډیر ناراض کړو. خدایے دې نهٔ کړي چې زهٔ په داسې ورانو لارو چارو سر شم چې د خپل پلار د دشمنانو سره ډله جوړه کړم. دوست محمد خان د خواجه انصار د مزار په خوا کښې د هرات په مقام دفن شو. (دوست محمد خان په نهم جون 1863ء وفات شوے دے) د دې نه پس هر کله چې د هغهٔ زامنو ته معلومه شوه چې مونږ په تخت نهٔ شو کښیناستلے نو هغوي شیر علي خان امیر کړو او د هغهٔ د اجازت او علم نه بغیر خپلو خپلو علاقو ته روان شول. امیر شیر علي خان چې ولیدل چې زهٔ خپلو ورونړو پریښودم نو یعقوب خان خپل زوے ئې د هرات گورنر کړو او پخپله قندهار ته راروان شو. قندهار ته د رارسیدو نه پس هم د هغهٔ ورونړه د هغهٔ ملاقات له رانغلل.

په دې اثنا کښې زما ترونه خپلو خپلو علاقو ته راوتښتیدل. اسلم د هژده نهر گورنر وهٔ او عظیم د کرمې او د خوست گورنر وهٔ. هغوي سمدستي کابل طرف ته د شورش پیدا کولو کوشش شروع کړو چې په هغه ځایے کښې محمد علي د شیر علي مشرے زوے امیر دوست محمد خان زما نیکهٔ هغه وخت گورنر مقرر کړے وهٔ چې څهٔ وخت هغه هرات ته تلو. دې محمد علي قندهار ته خپل پلار ته خط ولیکلو او ورته ئې ولیکل چې سمدستي کابل ته راواپس شه گنې نو بغاوت به وشي. شیر علي چې دا واوریدل نو خپلو ورونړو له د سزا ورکولو نه بغیر کابل ته راروان شو. او دا خیال ئې وکړو چې ماله وړومبے د میرني ورور علاج پکار دے او پس د هغې نه به زهٔ خپلو ورونړو ته سزا ورکوم. غزني ته چې هغه راورسیدو نو هغهٔ زما ترهٔ له د خپل روغ نیت ښودلو دپاره قرآن راواستولو او هغهٔ ته ئې ووئیل چې چونکې تهٔ په مونږ ټولو کښې مشر ئې زهٔ به ستا د خپل مشر ورور په شان عزت کوم. د دې دپاره تهٔ

سـمـدستي غزني ته راشه او ماسره يو ځل وګوره. په دې قسم د عظيم خان اعتبار وشو او شير علـي لـه راغـې او هغوي بيا په قرآن باندې د نوي سړ نه د وفاداري قسمونه وخوړل. د هغې نه پـس زمـا تـرهٔ خپلې علاقې ته راغـې او سرور خان خپل مشرې زوې ئ شير علي خان سره په طـور د مـلګري پريښودو. او هغوي دواړه کابل ته راغلل. څهٔ وخت چې شير علي خان غزني تـه راورسيـدو نـو سردار اسلم په باميان کښې وهٔ.د هغه ځـاې نه هغه بلخ ته وتښتيدو او خپل د کـور خـلـق او جـائـداد ئ ورروستو پريښودو. زما پلار دغه وخت په بلخ کښې وهٔ نو ما هغهٔ ته وليـکل چې اسلم له ډاډګيرنه مهٔ ورکوه او خپل ځان سره ئ مهٔ پرېږده. ځکه چې هغه شرارت پسـنـد دې. هـغـهٔ په جواب کښې ماته وليکل چې دا ناممکنه ده چې زهٔ هغه د ځانه وشړم ځکه چې هـغـهٔ مـا سره پناه اخستې ده. شير علي په دې زما ترهٔ عظيم سره قسم مات کړو او د هغهٔ بـرخـلاف ئ د سـردار رفيـق الدين چې يو ډير هوښيارسړې وهٔ د سالارۍ د لاندې فوځ کشي وکـړه. زمـا پـه تـرهٔ کښې د داسې طاقتور دشمن د مقابلې طاقت نهٔ وهٔ له دې کبله هغهٔ د ملکهٔ هـنـدوستان حکومت ته وتښتيدو او شير علي په کټه واز، زرمت او د لوګر په علاقو چې زما د پـلار وې او زمـا نيکهٔ هغهٔ له ورکړې وې قبضه وکړه. دا علاقې دغه وخت د احمد کشميري پـه حواله وې چې زما پلار لوې کړې وهٔ. شير علي چې دا بې انصافي وکړې نو قدرتي طور د هـغـهٔ او د هغهٔ د ورونو په منځکښې تعلقات په دې ښهٔ نهٔ شول او دا شان ډير وران کاري خلق مـوجود وو چې هغوي زما د پلار په زړهٔ کښې د هغهٔ برخلاف د دشمنۍ جذبات پيدا کړل. په دې خـلـقـو کښـې زما ترونه سردار اسلم، عبدالروف او سردار امين خان وو چې ډير پره جنبه باز وو.

څـهٔ موده شوې وه چې زما پلار ماته د ملاقات دپاره ليکلي وو چنانچه هغه خان اباد ته راغـې او دا ټـول شـرارت پسند خلق ورسره وو په دغه ساعت احمد هغهٔ له د امير د طرف نه چيـټـې راوړه چې پـه هـغـې کښـې ئ زمـا پـلار تـه يقين ورکړې وهٔ چې زهٔ تاته د ترکستان د اخستـلو هرګز خواهش مند نهٔ يم او زما خيالات تاته د دوستۍ دي. په حقيقت کښې دا احمد بيوفـا وهٔ او شير علي خان به هغهٔ ته زما په پلار باندې د مخبرۍ کولو دپاره تنخواه ورکوله. د دې دپـاره چې کـهٔ د شيـر عـلـي برخلاف کهٔ هغوي څهٔ سازش کوي نو چې د هغې نه ځان بچ کړي. زما د پلار او د هغهٔ د مشيرانو دا عادت وهٔ چې هغوي به ځان له پټه جرګه کوله او زهٔ به ئ پـه هـغـې کښې نهٔ پريښودم. د دې دپاره چې زهٔ د هغوي د سازشونو مخالفت ونهٔ کړم. ما به ضـرور د هـغـوي د سازشونو مخالفت کړې وهٔ کهٔ چرې ماته معلومه شوې وې چې هغوي څهٔ کـوي او زهٔ ډيـر خـفه شوم چې زهٔ په دې خبر شوم چې زما پلار ته هغوي وئيلي وو چې د کابل ډيـر سـرداران ستا حکومت منلو ته تيار دي له دې کبله دا به ښه وي چې تهٔ مير اتاليق سره ډله جوړه کـړې او د قـطـغـن ټـول مـلـک واپس ورکړې او دغه شان د بلخ او د قطغن فوځونه يو

ځاے په کابل ورروخېژوې. مير اتاليق دا خبره منظوره کړه ليکن د دې نه سمدستي پس مونږ واوريدل چې شير علي په ترکستان باندې پيش قدمي وکړه.

زما پلار زۀ په خپل ځاے تخت پُل ته واستولم او اعلان ئې وکړو چې زۀ پخپله د شير علي خان مقابلې ته وځم. ما ډير کوشش وکړو چې زۀ هغه د دې خبرې نه منع کړم او هغۀ ته مې ډير ووئيل چې زۀ به ستا په ځاے لاړ شم ځکه چې کۀ زۀ د شير علي د لاس نه شکست وخورم نو تۀ به ماله امداد راکړې ولې کۀ چرې قسمت تا سره ياوري ونۀ کړه نو بيا زۀ دا معاملات سمولے نۀ شم. زما پلار زما د دې تجويز په مضبوطوالي خو قائل شو ليکن د هغۀ دوستانو چې ټول نمک حرام وو په هغۀ زورور شول او هغۀ ته ئې دا خيال په دماغ کښې کښينولو چې د کابل خلق تۀ پيژنې او هم تۀ هغوي سره په ښه طريقه گفت و شنيد کولے شے. په دې خبرو د هغۀ باور وشو له دې کبله زما پلار زما په سوال غوږ کوڼ کړو او زۀ ئې تخت پُل ته واستولم.

د خان اباد د گورنرى په زمانه کښې ما د فوځ د تنخواه گانو د ادا کولو نه پس څوارلس لکه روپۍ بچ کړې وې. زما پلار د دې روپو ورلو دپاره صندقونه جوړ کړل او باجگاه ته سره د دې روپو روان شو. باجگاه د کابل او د بلخ په منځ کښې پروت دے. د هغۀ د فوځ کمان افسران غلام احمد، نائب محمد کرنيل سهراب او کرنيل ولي محمد وو. دا افسران زما پلار د ځان نه يو پړاؤ مخکښې د دې دپاره وليږل چې هغوي د باجگاه د درې واړه طرفو نه په غونډو باندې قبضه وکړي او دا هدايات ئې هم ورته ورکړل چې تر څو زۀ نۀ يم درسيدلے تر هغې جنگ مۀ نښلوئ. زما دا خيال دے چې ما وړومبے د دې خبرې ذکر کړے دے چې اگر کۀ غلام محمد يو ډير ښۀ افسر وۀ ليکن ډير سست سړے وۀ. په دې موقع هم هغۀ د خپلو هداياتو مطابق عمل ونۀ کړو بلکې په هغه غونډو باندې د قبضې کولو مهم هغۀ بلې ورځې ته پريښودو. په دې اثنا کښې د شير علي د فوځ تجربه کار افسرانو چې په هغوي کښې سردار رفيق خان او شيخ مير شامل وو د هغۀ د دې سستۍ نه فائده وچته کړه او په دې ټولو غونډو باندې ئې خپل سړي مقرر کړل. تر دې پورې چې په بله ورځ لا غلام محمد راويښ شوے هم نۀ وۀ چې د دې غونډو نه په هغۀ ډزې شروع شوې. د دې غلطۍ نتيجه بالکل تباه کن وه او باوجود زما د فوځ د بهادرۍ هغوي شکست وخوړو او دا مضبوطه دره د دشمن په قبضه کښې پاتې شوه.

د دې جگړې خبر زما پلار ته ورسيدو او هغه په پوره وخت خپلو افسرانو ته د امداد دپاره ورروان شو ليکن د هغۀ شکست خورده فوځ له قره کوتل په مقام مخې له ورغے هغه اوس لاچار خپل باقي مانده فوځ سره د دوآب په مقام ديره شو چې د يوې ورځې په مزل پروت دے. هغۀ خپلو سړو او توپو له ښۀ په غور سره ترتيب ورکړو او په دې مقام باندې ئې

دشـمـن سـره د بلې جګړې دپاره ځان تيار کړو ليکن دغه نمک حراموسردارانو چې هغه دې خـد تـه راورسـولو نو اوس هغوي د هغهٔ برخلاف شول او امير ته ئ خط وليکلو چې کوم فوځ عبدالرحمٰن تيار کـړے دے د هـغـې د مـقـابـلې طاقت په تا کښې نشته دې دپاره تاله اوس چـالبـازي پکار ده. ګنې شکست به وخورې. شير علي دا خبره ومنله او سلطان علي ئ چې د سـردار کـنـدل خـان د قـنـدهار زوے وۀ قرآن په لاس راواستولو او په قسم او تسله ئ دا اقرار وکـړو چـې زۀ بـه افـضـل ته د پلار په شان ګورم او دا مې فيصله کړې ده چې زۀ به د خپل پلار دوست مـحـمـد خان نوم سپک نۀ کړم. او د هغهٔ د زوي برخلاف به ونۀ جنګيږم. زما پلار په دې اقـرارونـو بـانـدې دوکه شو هغهٔ قرآن په ستر ګو کښيښودو او ښکل ئ کړو او د شير علي کـيـمـپ تـه روان شـو او فـوځ ته ئ ووې چې واپـس شئ. اګر چې هغوي ټولو هغهٔ ته ووې چې جـنـګ پـکـار دے. هـر کـلـه چې هغه د خپل ورور کيمپ ته ورسيدو نو امير د هغهٔ د استقبال دپـاره بهـر تـه راووت د هغهٔ رکابونه ئ ښکل کړل او دغه شان ئ د فريب خوشامنده وکړه او پـه دې ئ ډيـر افـسـوس ظاهر کړو چې ما ولې خپل مشر ورور سره د جنګ کولو خيال کړے دے. بيا هـغـهٔ زمـا د پلار دپاره يوه کرسۍ کښيښوده او پخپله د هغهٔ د خدمت دپاره ودريدو زمـا پـلار خو په زړۀ صفا وۀ هغهٔ د خدائے شکر ادا کړو چې زۀ او زما ورور بيا دوستان شو. يو ځو ګينټې پس زما پلار بيا خپل کيمپ ته راغے او د هغه ځائے نه ئ اووۀ زره ګډان او دوه زره خـرواره اوړۀ اواوربشـې د اسـونـو دپاره واستولې ځکه چې شير علي سره خرڅ خوراک کم وۀ. پـه بـلـه ورځ شيـر عـلـي زمـا د پلار کتو دپاره د هغهٔ کيمپ ته راغے او چې د هغه ځائے نه واپس شو نو محمد رفيق ئ راواستولو چې کۀ اجازت وي نو زۀ به د اولياء الله د بادشاه مقبرې لـه د زيـارت دپـاره لاړ شم. او د هغې نه پس به زۀ کابل ته ځم ځکه چې هلته زما ډير کار دے. زمـا پـلار هـغـهٔ تـه اجـازت ورکړو او خپل ټول فوځ ئ د درۀ يوسف په لار بلخ ته واستولو او پخپله دمحافظې دستې درې زره سورو سره د افاق په لاره شير علي سره ملګرے شو.

هـر کـلـه چـې فـوځ تخت پل ته راورسيدو کوم ځائے کښې چې زۀ مقيم وم نو ما خپل پـلار تـه وليـکل چې تا دا ډيره غلطي کړې ده چې فوځ دې د خپل ځان نه لرې کړو ليکن هغهٔ زمـا پـه خبـره غـور کښينښـودو. اميـر خپـل زوي مـحـمـد علي د ولي مزار له د زيارت دپاره واستولو او دا خيال ئ ظاهر کړو چې زۀ دې هلته د هغهٔ سلام له لاړ شم ولې ما هغهٔ ته صرف د پـخير راتلو چيټې وليکله او دا مې ورته وليکل چې کۀ تۀ زما د ليدو تکليف وکړې نو زۀ به تا ډيـر پـه خـوشـحـالـي وګـورم. هغهٔ په جواب کښې ماته وليکل چې زۀ خپل پلار له واپس تلل غـوارم او کـۀ خـدائے خيـر کـړے وۀ نـو بيـا بـه ليـدل کتل وکړو. هر کله چې زما پلار مزار ته ورسيـدو نـو زۀ د هـغـهٔ قدم بوسۍ له ورغلم په دغه موقع ما هغهٔ ته د دې خبرې د يقين ور کولو کـوشش هم وکړو چې شير علي تا سره ټګي کول غواړي ما هغهٔ ته ووئيل چې کۀ ستا اجازت

وي نو زۀ به امير څۀ وخت چې هغه راورسي ګرفتار کړم ولې زما پلار قرآن په دواړه لاسه کښې وچت کړو او وې وئيل د دې قرآن په خاطر دا شان د بې عزتۍ خبره ونۀ کړې ما په جواب کښې ورته ووئيل تاته به پته ولګي چې زما ترۀ به د دې بې عزتۍ د کار کولو نه پخپله قطعاً پرهيز ونکړي. په بله ورځ شير علي راورسيدو او شپه ئې په زيارت کښې وکړه زما پلار تخت پل له زما کتو دپاره راغے او د هغه ځاے نه هغۀ خپل ورور دپاره تحفې واستولې او ورته ئې وليکل چې زۀ تاته خيرباد وئيلو دپاره درتلل غواړم. ما هغۀ ته سوال وکړو چې دا شان مۀ کوه ليکن حسب معمول هغۀ زما وانۀ وريدل او تاشقرغان ته روان شو په هغه ځاے کښې امير د خپلې عهدنامې شرائط مات کړل او زما پلار ئې په بندي خانه کښې واچولو.

هر کله چې فوځ دا واوريده نو ډير برافروخته شول او مطالبه ئې وکړه چې د امير برخلاف مونږه وجنګوئې او په دې نيت زۀ مزار ته روان هم شوم او خيمې مې ولګولې ولې زما د پلار خط ماله راورسيدو چې کۀ جنګ دې وکړو نو زۀ به دې عاق کړم. ما دا چيټۍ خپل فوځ ته ولوسته او هغوي زما د جنګ نۀ کولو په اراده ډير خفه شول هغوي ټول کابل ته وتښتيدل او ما سره ټول پنځۀ يا شپږ سوه سړي پاتې شول. نيمه شپه ما له د پلار يو بل خط راغے چې سمدستي بخارا ته سره د هغې ټولو وفادارو سړو چې څوک تا سره تلل غواړي روان شه. زۀ سمدستي روان شوم او دومره په تيزۍ لاړم چې نمر ختو نو ما سرحد ته نيمه لار وهلې وه. څۀ وخت چې زۀ دولت اباد نومے يو ځاے ته ورسيدم نو ما د يوې غونډۍ په خوا کښې دوه زره سړي وليدل او د هغې غونډۍ د سر دپاسه نور سړي هم وو ما د دې سړو نه تپوس دپاره يو قاصد وليږلو نو معلومه شوه چې هغوي د بلخ د ازبک سوارۀ وو بيا زۀ هغوي طرف ته ورروان شوم هغوي ټولو ماته سلام وکړو او ماته ئې ووې چې مونږ ټول وادۀ له راغلي يو . بيا ما د هغوي نه تپوس وکړو چې د غونډۍ په سر دا سوارۀ څۀ کوي هغوي په جواب کښې ووې دا پښتانۀ دي او مونږ سره د هغوي څۀ کار نشته. د دې نه ما دا نتيجه وښکله چې دا به ضرور نائب غلام او عبدالرحيم خان وي چې زما نه يوه شپه وړومبے بيل شوي وو نو ما هغوي ته يو سړے واستولو چې راځئ اوس ما سره يو ځاے شئ اول خو هغوي انکار وکړو چې د تحريري ثبوت نه بغير ممکن ده چې زما قاصد دروغ ووائي ليکن څۀ وخت چې ما د هغوي تسلي وکړه چې زۀ عبدالرحمٰن يم نو هغوي زما په سړو کښې شامل شول. غلام محمد يواځے وۀ څکه چې هغه د شپې د ملګرو نه ورک شوے وۀ. مونږ سمدستي دريائے آمو طرف ته روان شو او ازبک سوارۀ هم مونږ سره د تلو دپاره تيار شول خو ما ورته ووئيل چې تاسو واپس ځئ ولې هغوي په ډير زور بيا ووې چې مونږ ستا په فوځ کښې نوکري کول غواړو. ما په جواب کښې ووې چې ما ته ستاسو د مدد ضرورت نشته او بيا مې ورته سوال وکړو چې تاسو واپس ځئ. ماته ښه پته وه چې د ازبکو پښتنو سره نفرت دے او هغوي

هر وخت هغو ته د نقصان رسولو دپاره تیار وي. اخر کار هغوي واپس کیدو باندې رضا شول او مونږه په خپله لار د هژده نهر په خوا کښې روان شو. د هژده نهر نه پس په لار بیا یو کلے یا ابادي نشته او تر دریائے آمو پورې شګلن ریګستان دے. په لاره د هیندوانو یو پټے مخې له راغے نو خپلو سرو ته مې ووې چې هر یو سړے دې دوه خربوزې او دوه هیندوانې په خپل خورجین کښې واچوي ځکه چې ممکن ده چې په لاره باندې په ریګستان کښې مونږ ته اوبۀ څښلو دپاره په لاس رانۀ شي.

هر کله چې دریائے امو ته نیمه لار پاتې شوه نو زما نیم سوارۀ د خربوزو د خوراک دپاره د اسونو نه کوز شول هر څو چې ما هغوي ته ووې چې دا ځاے محفوظ نۀ دے او ورته مې ووئیل چې خربوزې په خپل خپل اس باندې هم په سور حالت کښې وخورئ ولې نائب غلام محمد ووې چې دا به ښه وي چې د ورځې دا ګرمي په سیوري تیره کړو او د لږ ارام نه پس بیا تا پسې درشو. په دې هغوي خپل قالینونه د ځنګل د بوټو لاندې وغوړول او د سیورو لاندې پریوتل. ما دیرش سوارۀ او ټولې روپۍ ځان سره واخستې او پخپله لاره روان شوم او سست غلام محمد مې سره د دوؤ څلویښتو سورو وروستو پریښودو. د دې دستې مشران افسران نظیر حیدر عبدالرحیم کرنیل سهراب، کرنیل نظیر کمانډنټ سکندر چرخي، کمانډنټ حیدر د سکندر چرخي زوے او څلویښت کپتانان او رسالداران وو.

دلته ذا وینا هم پکار ده چې ما په تخت پل کښې خپل د دریو کالو زوے سره د ترۀ د زوي سردار عظیم خان چې د پنځلسو کالو وو پریښې وو. دا دواړه هلکان د سکندر خان اورکزي او د غلام علي په حواله وو ما چې قریباً نهۀ لس میله مزل وکړو نو وروستو راپسې یو سور په پویه راغلو او ماته ئې ووئیل چې هغه ازبک سوارۀ چې چا له ما رخصت ورکړے وۀ هغوي په ځاے د دې چې خپلو کورونو ته تلے وے په مونږ پسې راروان دي او په نائب غلام محمد او د هغۀ په سرو باندې چې د ونو د لاندې اودۀ پراتۀ وو حمله وکړه. او زۀ ئې راستولے یم چې مونږ له امداد ته راورسیږې. ما ووئیل زما د قوم خلق څنګه هوښیار دے چې په ځاے د دې چې هغوي ځان راخلاص کړي او بچ شي نو هغوي دا غواړي چې زۀ هم هغوي سره مړ شم. د یو سپاهي دپاره د جنګ په وخت کښې نۀ صرف دا ضروري ده چې هغه دې زړور وي بلکې هغۀ له دومره عقل ضرور پکار دے چې د ضرورت په وخت دې ځان هم راخلاص کړي او د یوې خطرې نه ځان راخلاصول هم کامیابي ده. ما هغه قاصد ته ووئیل چې څۀ وخت ما سره درې سوه سړي وو نو ما خو جنګ ونۀ کړو اوس زۀ دیرشو تنو سړو سره جنګ له نشم تلے. صرف یو افسر نظیر خان د خپل ورور سهراب په خاطر هغوي له ورغے.

بیا مونږ دریائے آمو طرف ته لار واخسته او چې هغې ته لږه فاصله پاتې شوه نو ما خپلو سړو ته ووئیل چې تاسو دلته ودریږئ مونږ سره د یو څو سړو په پویه سیند له ورغلو چې

کشتئ کرايه کړو. دا ما څکه دا شان وکړل چې مانګان زمونږ د لوے تعداد په وجه خوفزده نشي هلته صرف يوه کشتئ وه او د ترکمانو د قبيلو د بادامو او د اوسکو سوداګرانو د هغې په کرايه جګړه جوړې کړې وه. په هغوي کښې يو کس خپل اسباب او لس اوښان هم په هغې کښې کښينولي وو. زۀ د اس نه کوز شوم او په کشتئ کښې کښيناستم. مانګانو په ترکي ژبه کښې تپوس وکړو چې تۀ څوک ئې؟ ما ورته هم هغه ژبه کښې جواب ورکړو چې زۀ يو سوداګر يم او څۀ وخت چې د هغوي جګړه روانه وه نو ما خپل يو سور په خپلو ملګرو پسې وليږلو او څۀ وخت چې هغوي راورسيدل نو مانګان او سوداګران حق حيران پاتې شو. او په کشتئ ئې کښې په زور د کښيناستو کوشش وکړو ما ورته ټوپک نيغ کړو او ورته مې ووئيل چې کۀ چا په کشتئ کښې پښه کښيښوده نو په دې ټوپک به ئې ولم. اخرکار هغوي جګړه پريښوده او د يو سور نه ئې تپوس وکړو چې دا څوک دے هغۀ ورته په جواب کښې ووې چې دا سردار عبدالرحمٰن د افضل خان زوے دے. په دې هغوي ټولو ماته سلام وکړو اومعافي ئې وغوښته ما هغوي ټول معاف کړل او خپل سرې مې په دوؤ ټولو کښې تقسيم کړل. يو ټولے به سره د اسونو ما سره په کشتئ کښې او بل به خامخا وروستو پاتې کيدو. دوئ ته ما ووئيل چې د مانګانو نه ګينترئ واخلئ او ځان له مورچې جوړې کړئ. هرکله چې مونږ د سيند نه پورې غاړه پورې وتو کښې شو نو ما خپل مخکښې يوه کشتئ وليده ما خپل يو سړے چې ښۀ لامبوزن وۀ مخکښې وليږلو چې تپوس وکړه هغۀ واپس خبر راوړو چې دا عبدالرحيم دے او د شاه بخارا د طرف نه يو سفير ورسره دے. مونږ د هغۀ په ليدو خوشحاله شو. زۀ په لس بجې د شپږو ګينټو د مزل نه پس د بخارا په علاقه کښې داخل شوم. کشتي بانانو خپل اسونه ماته پيش کړل ليکن ما دا ښه وګڼله چې په دې غاړه زۀ د خپلو ملګرو د رارسيدو انتظار وکړم. بيا ما هغوي له لس مهران ورکړل چې په دې باندې ځان له او زمونږ اسونو له خوراک راوړئ. عبدالرحيم سره د سفيره کشتي بانانو سره مخکښې لاړو او هغۀ له ما دوه سوه ټنګې ورکړې چې لس ګډان واخله او غوښه پخه تياره وساته او درې سوه ډوډۍ زما د سورو دپاره سبا له تيارې وساته.

ما د شيراباد مير ته چې د شاه بخارا د لاندې افسر وۀ وليکل چې زۀ ستا علاقې ته رارسيدلے يم او تۀ دوه سوه سوارۀ د آمو نه پورې غاړه زما د سرو د امداد دپاره وليږه. او دې مير خلور سوه سوارۀ او ډيرې کشتئ سحر سبا د دې غرض دپاره وليږلې. د سحر په څيره ما د ټوپکو ډزې واوريدې او چې يوولس باره وچليدل نو ما خپل سوارۀ راويښ کړل او هغوي ته مې ووې چې دا ډزې زمونږ د ملګرو دي او چې په کشتئ کښې راسوارۀ شوي دي نو د خوشحالي نه ئې کړې دي. هر يو کشتي بان ته ما د پنځوس پونډو في کشتئ د ورکولو وعده وکړه او ورته مې ووې چې ما له شل کشتئ راولئ هغوي په جواب کښې ماته ووئيل چې د

سینـد پـه بـله غاړه جنګ روان دے له دې کبله مونږ پورې غاړه نشو تلے. ما یو څو منته فکر وکړو او بیـا مې حسن نـومے خپل غلام بچه ته حکم وکړو چې د یو زر پونډو غوټه چې هغهٔ سـره پـه چارج کښې وه راوړه. مونږ دا پونډونه د کشتي بانانو په مخکښې وشمارل او هغوي سره مې لوظ وکړو چې کهٔ کشتۍ مو راوستې نو دا ټول پونډونه به تاسو له درکړم. هغوي زما پـه دې خبره اعتبار نهٔ کولو خو ما ورته ووئیل چې دا هم اوس واخلئ خو سرې د کشتو راوړو دپاره ولیږئ. خلاصه د خبرې دا چې دیرش کشتۍ راورسیدې او مونږه دومره په جلدی لاړو چې د دوؤ ګینټو نه په لږ زیات وخت کښې مونږ د سیند د 2/3 حصې نه پورې وتي وو.

هلته ماته معلومه شوه چې هر کله زما په هغه سورو چې ما په ځنګل کښې اودهٔ پریښي وو ازبکـو حـمـلـه وکړه نو هغوي ورو ورو په جګړه کښې دریائے آمو طرف ته راواپس شو. هـر کـلـه چې ازبکو ته معلومه شوه چې په سیند کښې کشتۍ نشته نو هغوي د شپې جنګ ونهٔ کړو او دا خیـال ئ وکـړو چې سـحـر وختـي بـه مونږ دا سرې ونیسو. دغه ډزې وے چې ما اوریـدلـے وے. او څهٔ وخت چې زما سورو زمونږ کشتۍ ولیدې نو زړور شو او په بهادرۍ ئ جګـړه وکـړه او نـور سرې چې په مورچو کښې وو هغوي هم زړور شو. او په دشمن ئ ډزې وکـړې. او اخـر هغوي ټول ګبراو شو او وتښتیدل. مونږ بالکل صحیح سلامت بیا د سیند نه راپـورې وتـو او کـومـه ډوډۍ چې ما د هغوي دپاره تیاره کړې وه هغه هغوي ښه وخوړه ځکه چې د شپږ دیرش ګینـټـو نـه هغوي هیڅ شے نهٔ وهٔ خوړلے. مونږه د کشتي بانانو په کوررونو کښې د بله ورځ تر ماسپښین پورې ښهٔ ډوب اودهٔ شو. او بیا بخارا ته روان شو. یوه شپه مو په عـلـي اباد کښې وکړه چې د شیراباد میر او د هغې علاقې مشران زمونږ د خوش آمدید دپاره راغـلـل. مـونږ د میـر کـور ته چې زمونږ د قیام دپاره تیار شوے وهٔ لاړو. او لس ورځې د هغهٔ میـلـمـانـهٔ وو. د هـغـې نه پس ئ ماته چیتې راواستوله او ماته ئ د ملاقات کولو دپاره دعوت راکـړو او زهٔ سمدستي روان شوم. په وړومبۍ ورځ ما په شورآب کښې قیام وکړو بله ورځ په سیـر آب کښـې او دغـه شان یوه یوه شپه اوبلاق، چکباز ګله، چسنه، حافظار، پهي کراسک، حـراز او ګـډو کـلي کښې پاتې شو. زهٔ پنځهٔ شپې په قرشي کښې پاتې شوم او د هغه ځایے نه بـخـارا تـه لاړم. او د خوجاه او د کاکړ په خوا کښې تیر شوم د بادشاه وزیر سره د قاضي او د کـوتـوال کـاکـړ نـومے ځایے ته زما استقبال دپاره راغلو. او ځنې لوے لوے افسران هم هغوي سـره وو. دوئ زهٔ هغه کور ته بوتلم چې کوم زما د استوګنې دپاره تیار شوے وهٔ. مهماندار یا میـزبـان زمـا سلام له راغـے او نهٔ ورځې ئ زما روټۍ وکړه. د هغې نه پس بادشاه زما او زما د افسرانو دپاره خلعتونه راولیږل. لس زره تنګې ئ زما دپاره او زر زر زما د ه هر یو افسر دپاره او پـنـځهٔ سوه یا شپږ سوه د هغې نه کمې درجې خلقو دپاره او دوه سوه زما د هر یو سور دپاره هغهٔ راواستولې. هغهٔ دوه جوړې زري ساز زما د دپاره راواستولو. د دې په بدل کښې ما هغهٔ له

یو د سرو زرو د دستې توره او یوه جوړه زري ساز چې د هغې وزن د دولسو زرو پونډو وه او یو د سرو زرو ملمع شوے چاړه دوه سوه مهران یوه جواهراتو باندې جړاو شوې پیټۍ چې شلور سوه پونډه قیمت ئې وه سره د دوؤ سوؤ عربي اسونو چې زما کورني بچي وو او انګریزي زینونه چې سرهٔ زر پرې ختلي وو. نهٔ زري تهانونه، نهٔ کشمیري شالونه، نهٔ د کشمیر د شالونو پګړۍ، نهٔ د سپین ململ تهانونه او نهٔ تیله دارې ټوپۍ ورواستولې. بادشاه ما له ډیر څهٔ کپړې هم راواستولې چې په هغې کښې درې پرتوګونه او درې قمیصونه هم وو. د پرتوګونو بلهې نهٔ وے اوما ته چا ووئیل چې دا بادشاه پخپله اغوندي. په دې زهٔ لږ حیران شوم څکه چې هغه د شلور مختلف رنګونو د کپړې نه یعنې د سرې، سپینې، کرمزي او د شین رنګونو نه جوړ شوي وو. څهٔ وخت چې ما او زما افسرانو دا جامې واغوستې نو یو سړے راغلو او وې وئیل چې بادشاه مونږه لیدل غواړي. 'مونږه چې محل ته ورسیدو نو وزیر زمونږ مخې له راغے اومونږ ئې د بادشاه کمرې ته بوتلو. د شاهان بخارا رواج دے چې بادشاه په یو لوے کور کښې سره د دوه یا درې منظور نظر غلام بچه ګانو کښیني. د هغهٔ ټول افسران د دې کور نه چاپیره د دیوال په خوا کښې په وړو وړو وچتو چونترو ناست وي. د کور په دروازه کښې دوه دروانچیان ولاړ وي چې کله کله دننه په دې غرض ګوري چې کهٔ بادشاه څهٔ اشاره په خپلو سترګو وکړي. کهٔ چرې هغه سترګه ووهي نو هغوي وردؤ کړي او څهٔ چې هغه ورته ووائي نو هغه پیغام سره هغوي په شا راروان شي. او هډاچي یا د دربار افسر ته هغه پیغام ورکړي. هرکله چې زهٔ دې دربانچیانو ته ورسیدم نو هغوي بادشاه له وردؤ کړو بیا هډاچي له واپس راغلل او وې وئیل چې زمونږ بادشاه ستا تحفې په خوشحالۍ منظورې کړې. بیا ئې ماته دا ووئیل چې تهٔ د خپلو دواړو اسونو قیزې په خپل لاس کښې ونیسه او تنګې په خپله شا باندې واچوه او بادشاه ته سلام وکړه. ما په جواب کښې ووې چې تنګې خو د یو سړي بار دے او دوه اسونو دپاره دوه سائیسان پکار دي او زهٔ به خپل سر په دنیا هیچرې هم چاته په زمکه کښینږدم. ما دا هم ورته ووئیل چې زهٔ خدائے پاک پیدا کړے یم او بغیر د هغهٔ نه به هیچا ته ټیټ نشم. دربان چرې وړومبے دا شان جواب د چا د خلې نه اوریدلے نهٔ وهٔ هغه ډیر خفه شو له دې کبله ما هغهٔ ته ووې چې زهٔ به پخپله دا پیغام بادشاه ته ورسوم او کهٔ نهٔ وي نو بل ملک ته به لاړ شم. اخر کار وزیر هډاچي ته څهٔ خبره وکړه او هغه بادشاه له لاړ بیا هغه واپس راغے اوماته ئې ووې چې اعلیٰ حضرت زما سلام منظور کړو. زهٔ په کور وردننه شوم او په عامه طریقه مې سلام علیکم ووې او لاس مې بادشاه له ورکړو هغهٔ ماته ووئیل چې زما خوا کښې کښینه بیا زهٔ سم په ادب کښیناستم او د خبرو په دوران کښې ما هغهٔ سره په ادب خبرې وکړې. مونږ قریباً یوه ګینټه دغه شان خبرې وکړې او بیا زهٔ واپس خپل کور ته راغلم.
د دې نه دهٔ میاشتې پس بادشاه ماله د خپل یو نوکر په خلهٔ دا سوال جواب راولیږلو

چې بادشاه په تا ډیر مهربان دے نو مناسب به دا وي چې ته هغهٔ له یو زر پونډه او درې ښکلي غلام بچه ګان راواستوے. ما ورته په جواب کښې ووئیل چې دا هلکان ما ته د خپل اولاد په شان ښکاري او سرهٔ زر ورکول د بادشاهانو کار دے. ما بادشاه له د رواج مطابق تحفې ورکړې او اوس زما د هغهٔ نه د بخششونو او د انعامونو طمع ده. لس ورځې پس هم هغه سړے ماله راغلو او ماته ئ ووئیل بادشاه تاته سلام رالیږلے دے او ډا ئ خواهش دے چې تا د خپل دربار په افسرانو کښې شامل کړي چې تهٔ بیا هره ورځ د هغهٔ په خدمت کښې پیش کیږے. هغه ستا په حقله ډیر دوستانه خیالات لري. ما په جواب کښې ووئیل چې زهٔ هیچرې د چا نوکر نهٔ یم پاتې شوے او نهٔ زهٔ د نوکرۍ په دستور پوهیږم په دې هغې سړي ماله ډیره تسلي راکړه چې کهٔ ما د بادشاه د ملازمت اختیار کړو نو ما له به هغه یو لوے جائداد راکړي. ما په جواب کښې ووئیل زهٔ دعا کوم چې د بادشاه عمر دې ډیر شي نهٔ مې روپۍ پکار دي او نهٔ جائدادونه. دې سړي بیا ما ته ووئیل چې کهٔ تاعهده قبوله نهٔ کړه نو تاته به تکلیف پیښ شي. خو ما ورته ووې چې ولې به پیښیږي. ځکه چې تکلیف صرف هغه خلقو ته پیښیږي چې څوک جرم وکړي. د.دې نه علاوه زهٔ خو د بادشاه په حفاظت کښې یم. ما هغهٔ ته دا هم ووئیل چې د بادشاه کهٔ څهٔ نور حکم احکام وي نو زهٔ ئ تعمیل کولو ته تیار یم. خو زهٔ دا نوکري د هغهٔ نشم قبلولے. ځکه چې دا قسم فرائض ما نه خپل نیکهٔ چې امیر کابل وهٔ هم نهٔ وو غوښتي. ما هغه سړي ته دا هم ووئیل چې کهٔ زهٔ چرې د بادشاه د دربار افسر شوم نو زهٔ خو بیا تولهٔ ورځ د نورو په شان بیکاره نشم کښیناستې او کهٔ چرې زهٔ د خپلې تنخواه په عوض کښې کار کوم نو بادشاه به د خپلو موجوده دربانانو نه ناراض شي. ما هغهٔ ته دا متل چې په ما حاوي کیدو ووئیلو " نہ براشتر برسوارم نہ چوں اشتر زیر بارم" یعنې نهٔ خو زهٔ د رعیت بادشاه یم او نهٔ د بادشاه رعیت یم. د دې ټولو خبرو نه پس هغې سړي ته پته ولګیده چې د هغهٔ ټوله وینا هسې د هغهٔ وخت ضائع کول وو له دې کبله هغهٔ زمونږ باهمي ګفتګو ولیکله او زما نه رخصت شو.

څهٔ وخت چې زهٔ ورومبے بخارا ته ورسیدم نو ما یو اعتباريّ نوکر شل پونډه د میاشتې په تنخواه کښې د دې غرض دپاره مقرر کړے وهٔ چې هغه ماته د محل د روزانه واقعاتو باقاعده خبر راکوي. هلته رواج دا دے چې هر یو څیز زباني طے کیږي او هیڅ څیز لیکلے نشي. په دې سبب کوم خلق چې دربار کښې موجود وي هغوي د ټولو واقعاتو نه خبریږي. د رمضان په میاشت کښې به ټولو افسرانو ډیر لږ کار کولو او هره ورځ به ئ روژه نیوله. لیکن ماته د کوتوال د ماتحتانو د ویرې نه ډیر لږ ارام ملاویدو ځکه چې د کومې ورځې نه ما د بادشاه د هغې ملازمت نه انکار کړے وهٔ کوم چې هغهٔ ماته پیش کړے وهٔ نو زما به نګراني کیدله او د یو شاهي قیدي نه په بهتر حالت کښې نهٔ وم. ما په ظاهره د دې هیڅ نوټس وانهٔ خست او نهٔ مې نوکرانو ته د دې خبرې ذکر وکړو.

د اختر پـه ورځ د بادشاه نوکرانو ماله دوه جوړې جامې يو پټکے او يو رومال په طور دخلعت راوړل او ماته ئ ووئيل چې بادشاه مهرباني کړې ده او حکم ئ کړے دے چې زۀ دې سبا سحر نمرخاتۀ محل کښې حاضر شم چې د اختر مبارکۍ رسم کښې شامل شم. هر کله چې زۀ هلته ورسيدم نو ما په يوه لويه کمره کښې شلويښت تنه سړي ناست وليدل چې په هغوي کښې يو محمد خان وۀ چې د بلخ يو منشي وۀ (دې ورومبے د سر پل مير وۀ خو د افغانستان برخلاف ئ بغاوت وکړو بيا زمونږه فوځ د غلام علي او کرنيل ولي محمد د سالارئ لاندې دۀ تـه شکست ورکړو او بخارا ته وتښتيدو.) ماته هغوي د ټولو نه يوه ښکته چونتره راکړه چې دلته نورو شلو تنو سره کښينه او محمد خان د ټولو نه په وچته چونتره لسو تنو سره ناست وۀ. په دې اثنا کښې بادشاه راورسيدو ټول خلق پاڅيدل او د هغۀ لاسونه ئ ښکل کړل ما هم د هغۀ لاسونه ښکل کړل او بيا هغه بهر ته ووتو. د دې نه پس د متايانو ډير پتنوسونه راغلل يو ميزپوش وغوړولے شو او دا ټول څيزونه په هغې کښيښودې شو بيا نوکران هم ووتل او موجود خلقو سمدستي د هغې په خوراک ګوتې پورې کړې. کوم خلق چې لېږ لږې ناست وو هغوي ترې خپل رومالونه ډک کړل او خپل خپل ځاے باندې کښيناستل او لکه د ځناورو په شان ئ هغه وخوړل ځکه چې د ځناورو دپاره هم د رکيبو ضرورت نۀ وي. ما په ډيره حيرانتيا دا تماشه ليدله چې يو سړي په ما اواز وکړو دا د بادشاه خورده ده تۀ ئ ولې نۀ خورې، ما يو کيک راوچت کړو او وۀ مې وئيل چې نور مې څۀ پکار نۀ دي بيا زۀ فوراً عيدګاه ته لاړم او په هغه ځاے کښيناستم کوم چې بادشاه ما دپاره منتخب کړے وۀ. هلته ما په حاضرينو کښې نائب غلام محمد کمانډنټ سکندر خان سره د نورو شلويښتو سړو چې ورومبے زما نوکران وو او اوس د يوې مياشتې نه د بادشاه نوکران شوي وو، وليدل. دې سړو ماته دا شان وکتل لکه چې ما هغوي د سره هډو پيژني نه. او سلام قدرې ئ هم راتـه ونۀ کړو. بادشاه بيا يو سپين اس باندې سور راورسيدو اويوه لويه جغه ئ په خپل پټکي کښې ايښې وه او بله ئ د اس په سر کښې ايښې وه. او دريمه ئ د اس په شا لګيدلې وه. هغۀ يو کشميري کمربند تړلے وۀ او د شلو يا ديرشو ګزو تيله داره کپړې نه ئ پټکے وهلے وۀ. د هغۀ په کمربند کښې يوه د جواهراتو نه جړاؤ چاړۀ وه او ډير په نخرو راروان وۀ. د هغۀ په هر يو دريم قدم به خلق زمکې پورې ټيټ شول ليکن زۀ بې حس و حرکت ولاړ وم. بادشاه راغے او زما مخکښې کښيناستو او تکبير ئ ووئيلو هر يو سړي هغۀ سره تکبير ووئيلو ما وليدل چې د بادشاه د پټکي درې پټې سپړدې شوې وے او څۀ وخت چې مونځ خلاص شو نو هغۀ خپل سر د دې ويرې نۀ شو وچتولے چې پټکے به مې پريوځي. ما دا نۀ شوه برداشت کولے چې دومره لوے بادشاه دې دا شان بې عزته شي له دې کبله ما سلام وګرځولو او ورټيټ شوم او هغه پټې مې وتړلې. خداے پاک غفور او رحيم دے او اګر چې ما نه مونځ

لاړو ولې زۀ خوشحاله شوم چې ما د نیکۍ یو کار وکړو. مونځ چې خلاص شو نو بادشاه په خپل اس سور شو او خلق زمکې طرف ته تیټ شول هر کله چې زۀ وزګار شوم نو زۀ خپل کور ته لاړم.

د دې نه لږه موده پس بادشاه خپل کوتوال ته ووې چې عبدالرحمٰن باندې د نورو خلقو ښځو سره د ناجائز تعلقاتو ساتلو الزام ولګوه. لیکن دا الزام بې بنیاده ثابت شو. ځکه چې دا ثابته شوه چې زۀ چرې یواځې شوے نۀ وم. او شپیتۀ اویا تنه به ما سره همیش ملګري وو. د دې نه پس بادشاه کوشش وکړو چې زما په نوکرانو کښې ورانے پیدا کړي چې هغوي ټول زما نه وتښتي.

په دې ورځو کښې خبر راغے چې روسیانو تاشقند واخستو او د بخارا د اخستو قصد ئې کړے دے. بادشاه سمدستي سمرقند ته روان شو او زۀ او زما ملګري ترینه وروستو پاتې شو. ما سمدستي یو نوکر خپل ترۀ محمد عظیم خان له راولپنډۍ ته واستولو او یوه چیټۍ مې هغۀ له ورکړه چې په هغې کښې مې ورته ولیکل چې زۀ دخپل ځان ان شاء الله د خلاصولو کوشش کوم او بلخ ته روانیږم او هغۀ ته مې سوال کړے وۀ چې کۀ ممکن وي نو تۀ هندوستان نه د سوات په لاره راروان شه. او د هغه ځاے نه چترال او بدخشان ته راشه چې مونږ دواړه سره په بلخ کښې یو ځاے شو. ما د بلخ فوځ ته د دې متعلق ولیکل او شاه بخارا ته مې سمرقند ته خپل وطن ته د واپسۍ د اجازت دپاره خط ولیکلو. دا خط ما د ناظر حیدر خان او کمانډنټ نذیر په لاس واستولو. د بادشاه وزیر، قاضي او د بخارا کوتوال چې د دې نه خبر شول نو ما ته ئې پیغام راولیږلو چې تا ولې زمونږ د اجازت نه بغیر بادشاه ته خط لیکلے دے. ما ورته په جواب کښې ووئیل د بادشاه ډیر ملازمان دي او زۀ یو هم د ځان نه وچت نۀ ګنم. بیا هغوي ماته ووئیل چې مونږ به ستا قاصد پسې سړے ولیږو ولې ما هغوي پوهه کړل چې کۀ تاسو دا شان کار وکړو نو زۀ به ستاسو د بادشاه د اجازت نه بغیر رخصت شم او بیا به تاسو زما د دې کار د هغۀ جواب کوئ. بادشاه زما د چیټۍ هیڅ جواب رانکړو او زما قاصد ئې ځان سره ایسار کړو. له دې کبله په یو څو ورځو کښې ما هغۀ له بیا جرنیل علي عسکر خان ولیږلو او دا دویمه چیټۍ چې زما هغۀ له ورسیده نو بادشاه خپلو مشیرانو سره مصحلت وکړو. هغوي هغۀ ته صفا ووې چې د کال د شروع نه تر دې وخته عبدالرحمٰن سره نۀ د روپو او نۀ د خرڅ خوراک امداد کړے دے نو د هغۀ په بخارا کښې د پاتې کیدلو نه څۀ فائده. بادشاه دا خبره ومنله او په اخر کښې ئې ماته د خپل ملک نه د وتو اجازت راکړو. بادشاه خپل وزیر ته دا هم ولیکل چې دا معلومه کړه چې د عبدالرحمٰن نوکران زما نوکري کول غواړي او کۀ هغۀ سره پاتې کیدل غواړي. لیکن چیټۍ ډیره صفا نۀ وه او وزیر ترینه دا مطلب واخستو چې د بادشاه مراد د هغه نوکرانو دے چې څوک في الحال زما په نوکرۍ کښې دي. حالانکې د

هغهٔ مطلب د هغې نوکرانو نه وهٔ چې ځوک ما سره بخارا ته راغلي وو. او بیا د بادشاه په نوکرۍ کښې شامل شوي وو. د دې غلط فهمۍ په وجه وزیر ماته سوال جواب راولیږلو چې تهٔ ما ته ټول نوکران راولیږه چې زهٔ هغوي ته د بادشاه د خلې هدایات ورسوم. په دې باندې قدرتاً زما دا خیال پیدا شو چې وزیر زما نوکران گرفتارول غواړي او ما به د هغوي نه پس نیسي. له دې کبله ما د هغهٔ خبره ونهٔ منله او ورته مې ووئیل چې کهٔ تا زما د نوکرانو دپاره څهٔ پیغام راوړے وي نو تهٔ پخپله راشه او زما په موجودگۍ کښې هغوي ته ووایه. زما نوکرانو هم دې سره اتفاق وکړو او وې وئیل چې مونږ به ستا په ځاے سر ورکړو او مونږ ژوندي خونهٔ ځو. نو مونږه دې مړهٔ ځوک وزیر ته بوځي. هغوي خپل خپل ځان په وسله پُر کړو او بیا ما قاصد سره دجوابه واستولو. په جواب کښې هغهٔ خپل سرکاتب راواستولو هغهٔ ما ته د بادشاه پیغام راکړو مگر زما نوکرانو جواب ورکړو چې مونږ بخارا ته د خپل شهزاده د خدمت دپاره راغلي یو نه چې د بادشاه د غلامۍ دپاره.

د دې نه دوه ورځې پس هرکله چې ما د خپل سفر دپاره تیارے کولو نو سکندر خان او نائب غلام محمد سره د خپلو خپلو سړو راغلل خپلې بسترې او ټغرونه ورسره وو او ماته ئې ووئیل چې بادشاه زمونږه هر یو کس نه یو لیکلے کاغذ اخستو چې تاسو تسلیم کړئ چې تاسو زما غلامان یئ او چونکې مونږ د دې نه انکار وکړو له دې کبله هغهٔ مونږه ټول موقوف کړو ځکه تاله راغلي یو. د دې خبرو په دوران کښې هغوي پسې بلا قرض خواهان راورسیدل او خپله قرضه ئې ترینه وغوښته چې د هغې ټولو جمع دوه زره پونډه کیدل. ما نائب غلام ته ووئیل چې کهٔ تاسو ما سره وفادار پاتې شوي وے.نوما به د دې نه زیاتي روپۍ په تاسو لگولي وے. هغه ماته د سترگو وچتولو قابل نهٔ وهٔ.

ما بیا کمانډنټ سکندر نه تپوس وکړو چې ستا څهٔ نیت دے هغهٔ ماته ووې چې ما د بخارا په یو دوؤ ښځو زړهٔ بائللے دے او کهٔ چرې ما سره نهٔ ځي نو زهٔ به ورروستو پاتې شم. ما هغې خلقو پسې سړے ولیږلو او یو زر پونډه مې ورته پیش کړل چې مونږ سره ځئ لیکن هغوي انکار وکړو او سکندر ورروستو پاتې شو. پنځهٔ ورځو کښې زمونږ تیارے پوره شو او مونږ بلخ ته روان شو.

# دريم باب

د امير شير علي خان د خپلو وروڼو سره بدسلوکي کول او پخپلو کښې جنګيدل، په دې جنګ کښې د دهٔ ورور امين خان او د امير د زوي محمد علي خان قتليدل، د عبدالرحمٰن خان راتلل او د شير علي خان فوځ په قبضه کښې راوستل، دې نه پس په کابل حمله کول او کاميابيدل، بيا د عبدالرحمٰن خان او شير علي خان ترمنځه په ډيرو ځايونو کښې جنګ کيدل، بيا د عبدالرحمٰن خان فتحياب کيدل، د محمد افضل خان د قيد نه خلاصول، او د شير علي خان هرات ته تښتيدل، د محمد افضل خان د اميرئ اعلان کول، او د شير علي خان سره نور جنګونه کول، د عبدالرحمٰن خان په قندهار قبضه کول او شير علي خان بيا هرات ته تښتيدل.

اوس زهٔ د شير علي خان د کارونو هغه قصه بيانوم چې کوم هغهٔ زما د بلخ نه د تښتيدو نه پس کړې وو. هر کله چې ما هغه ملک ته شا کړه نو په تاشقرغان کښې د شپږ ورځې قيام نه پس امير هلته لاړو. د هغهٔ وړومبے کار دا وهٔ چې زمونږ ښځې او بچي ئ کابل ته بنديوان روان کړل او په ټوله لار ئ زما پلار ځان سره ګرځولو. بيا هغه سردار فتح خان چې د اکبر خان زوے وهٔ هغهٔ د بلخ ګورنر کړو او کابل ته روان شو او سمدستي ئ د خپل ورور امين او شريف خان برخلاف د جنګ تيارئ شروع کړې. د هغهٔ تيارئ چې پوره شوې نو قندهار ته روان شو او خپل زوي ابراهيم او سردار ميزر خان ته ئ د کابل انتظام حواله کړو. زما پلار هغهٔ سره په طور د قيدي ملګرے وهٔ ليکن زمونږ د کور خلق هغهٔ وروستو پريښودل خو نهٔ ئ روپئ د هغوي د خرڅ خوراک دپاره پريښودې او نهٔ ئ د هغوي د حفاظت دپاره څوک سړي مقرر کړل. زما پلار هغهٔ ته د جيل خانې نه يو خط د هغهٔ د دې کارونو برخلاف وليکلو او ورته ئ ووې چې تا د خپلو ميرنو وروڼو سره خو ډير بدسلوک وکړو او اوس خپلو سکه ؤ وروڼو سره دا شان خراب سلوک کوے. هغهٔ ورته دا هم وليکل اوس نور خپل ځان مهٔ بې عزته کوه او نوره خونريزي مهٔ کوه ګنې د دې نتائج به ستا دپاره ډير خراب وي او تهٔ به پښيمانه ئ. شير علي خان د دې خبرې هيڅ پروا ونهٔ کړه. او خپلو وروڼو سره ئ دوه ورځې جنګ وکړو. او نتيجه ئ دا شوه چې د هغهٔ خپل ورور امين هم قتل شو او د هغهٔ خپل زوے او وليعهد سردار محمد علي خان هم په جنګ کښې قتل شو. زما پلار چې د دې حادثو نه خبر شو نو هغهٔ بيا امير ته وليکل " ستا د دې بدعملئ انجام به تا دپاره ډير غمګين وي او په سر به دې افسوس وي." امين خان چې قتل شو نو د هغهٔ نعش ئ د امير مخکښې کښيښودو امير ووئيل د دې سپي نعش وغورځوئ او زما زړي ته ووايئ چې راشي او ماله په دې کاميابئ مبارکباد راکړي د هغهٔ افسران خو هغهٔ ته د رښتيا وئيلو نه ويريدل په دې سبب هغوي د هغهٔ د زوي نعش هم د هغهٔ مخکښې کښيښودو او لا په لږه فاصله باندې وو چې امير ووئيل دا بل سپے څوک دے؟ په جواب کښې هغوي هغه نعش د هغهٔ په پښو کښې کښيښودو په دې هغهٔ

خپلې جامې څيرې کړې او په سر ئ خاورې واچولې. هر کله چې د هغهٔ دا ژړا انګولا بس شوه نو بيا هغه بيخوده شو. او يوه ګينټه هم دغه شان بيهوشه وهٔ. چې په خود شو نو هغهٔ د خپل زوي نعش سره خبرې شروع کړې. او بيا بيخوده شو تر دوؤ ورځو پورې هم دغه شان معامله وه او د هغې نه پس هغهٔ د خپل زوي نعش کابل ته واستولو. او امين خپلو نوکرانو په قندهار کښې د مقدس خرقې د دروازې په خوا کښې دفن کړو. شير علي چې د دې نه پس قندهار ته رااروان شو نو په لاره کښې به کله بيهوشه او کله به په هوش وهٔ او چې څهٔ وخت هغه هلته ورسيدو نو د پاګلانو په شان به ئ چغې وهلې. ما دغه موقع د بخارا نه د راتلو بهتره وګنړله او چې شير اباد ته راورسيدم نو ما د بلخ او د هغې د ملحقاتو فوځ ته چيټئ وليکلې. نتيجه دا شوه چې زهٔ هغوي بالاتفاق فوځ سره يو ځاے کيدو ته مدعو کړم.

په دې موقع زهٔ د دوؤ ورونو ولي محمد او فيض محمد د ژوند مختصر حالات ليکم. دا سړي د اخشه ګورنران وو او زما پلار هغوي له دا صوبه ورکړې وه. دا دواړه د يوې وينځې زامن وو او هر کله چې هغوي په کابل کښې وو نو امير دوست محمد خان به په خپل ژوندون کښې هغوي له دوه زره روپۍ سالانه تنخواه ورکوله. چې زما نيکهٔ مړ شو نو زما ميرنۍ مور مرواريد هغوي سره همدردي وکړه هغې زما پلار ته يوه چيټئ وليکله چې د دې سړو مور په دې خبره ډيره فکرمنده ده چې تهٔ هغوي په خپله غلامۍ کښې واخلې. او دا ئ هم ورته وليکل چې هغوي سره د خرڅ دپاره روپۍ هم نشته. د دې په جواب کښې زما پلار پنځهٔ زره روپۍ ولي محمد ته واستولې او هغهٔ ته ئ وليکل چې بلخ ته راشه. هر کله چې هغه بلخ ته راورسيدو نو هغهٔ ته يوه پلټن شپږ توپې او يو زر بې قاعدې پياده سپاهيان او يو زر سوارهٔ سره د اخشې صوبې حواله شول. زما پلار فيض محمد ته هم سوال جواب وليږلو چې تهٔ خپل ځان سره بال بچ راوله. ليکن ولي محمد نمک حرام ثابت شو او څهٔ موده پس شير علي سره زما د پلار د ګرفتارۍ په سازش کښې شريک شو. شير علي له د دې امداد ورکولو په صله کښې امير، ولي محمد خان ځان سره کابل ته بوتلو او د هغهٔ ټوله علاقه ئ د هغهٔ ورور فيض محمد ته حواله کړه. په دغه ورځو کښې د فيض محمد نه د صوبې د حساب کتاب مطالبه وشوه ليکن چونکې هغهٔ بعضې ټيکې خپل ځان له ايښې وے له دې کبله هغه د حساب کتاب ورکولو قابل نهٔ وهٔ. ما د خپلو مخبرانو نه اوريدلي وو چې ولي محمد هم څهٔ خوشحاله نهٔ دے له دې کبله ما هغوي ته د نظر حيدر او د جرنيل علي عسکر په لاس چيټئ وليږله چې د هژده نهر رسالې دوه سوه سوارهٔ چې د ولي محمد د کمان د لاندې وو ما سره په شيراباد کښې شامل شوي دي او کهٔ چرې تاسو هم ما سره شامل شئ نو ډير انعام اکرام به درکړم. ما د هغې علاقې د ډاکوانو مشر هم راوغوښتو او هغوي له د انعاماتو او د خلعتونو ورکولو نه پس ما د هغوي نه درې زره سوارهٔ وغوښتل هر کله چې شاه بخارا ماله بلخ ته د راتلو اجازت راکړے وهٔ

نو هغهٔ د شیراباد میر ته هم ولیکل چې تهٔ عبدالرحمٰن په هیڅ وجه د دریو ورځو نه زیاتي په شیراباد کښې پرې نهٔ ږدې لیکن چونکې ما سره دوه نیم زره سوارهٔ وو او میر سره صرف سل سوارهٔ وو نو دا زما په مرضۍ وه نه چې د میر. چې زهٔ څو ورځې په شیراباد کښې پاتې کیږم. میر په دې ډیر حیران شو چې زهٔ څهٔ وکړم او ماته د مصلحت دپاره راغے ماته ئې ووئیل چې کهٔ تاته وایم چې څه نو تهٔ مې وژنې او کهٔ د بادشاه د حکم تعمیل نهٔ کوم نو هغه مې مړ کوي. نو زهٔ په دوه کښې حیران یم. ما هغهٔ ته ووئیل چې زهٔ به درته د دې مشکل حل وښیم وړومبے خو تهٔ بادشاه ته ولیکه چې عبدالرحمٰن سره دومره مضبوط طاقت دے چې د هغهٔ د مرضۍ نه برخلاف زهٔ هغه ویستے نشم نو ماله مزید احکام راواستوه. ما هغهٔ ته دا مشوره ورکړه چې دا چیټۍ د یو داسې سست رفتار قاصد په لاس واستوه چې زر ونهٔ رسي. او کهٔ بادشاه په دې څهٔ اعتراض وکړي نو هغه دې ورته ووائي چې زهٔ په لاره سخت ناجوړه شوے وم او مرګ ته رسیدلے وم خو خدائے پاک د دې غرض دپاره بچ کړم چې د بادشاه په دربار عالي کښې د حاضریدو قابل شم. دا تجویز د میر خوښ شو او هغهٔ زما د تجویز مطابق یوه چیټۍ د یو ښهٔ اعتباري سړي په لاس واستوله . دیخوا ما خپل انتظام زر زر سر ته ورسولو خو په یو څو ورځو کښې ما واوریدل چې د سر پل فوځ بغاوت کړے دے او د خپلو نوو افسرانو د قتلولو نه پس د اخشے په طرف روان شوے دے. د دې خبر په اوریدو زهٔ سمدستي راروان شوم او یو څو ګینټې مې په وزیر اباد کښې قیام وکړو او بیا د هغه ځاے نه دریائے آمو ته راغلم. هلته صرف دوه کشتۍ وے په دې وجه ما په خدائے پاک توکل وکړو او خپل دیرش ښهٔ بهادرانو سورو او افسرانو سره مې د پورې وتو جرأت وکړو. افسرانو کښې ما سره کرنیل نظیر خان او کرنیل ولي محمد خان وو او زما اعتباري مریے هم وهٔ چې په جنګ کښې خالص زمرے وهٔ (هغه اوس زما کمانډنټ چیف دے) دغه وخت چې زهٔ ئې ذکر کوم د هغهٔ ږیره نهٔ وه لیکن ما د هغهٔ قابلیت په ډیرو جګړو کښې څو څو ځله ازمائیلے وهٔ. او ماته معلومه شوې وه چې هغه په یوائې ځان د شلویښتو سورو برابر دے. یو بل نامتو بهادر چې په دې موقع ما سره وهٔ هغه زما غلام فرهاد وهٔ. مونږه د دریائے آمو نه راپورې وتو او په برابر وخت زما نور سړي هم راپورې وتل. مونږه ټوله شپه مزل وکړو او نمرخاتهٔ د اخشے په صوبه کښې یو کلي ته راورسیدو چې د هغهٔ نوم چیلاک سراباد وهٔ. هلته د قیام کولو نه پس ما هغې دوؤ پلټنو ته پیغام ولیږلو چې د سرپل توپخانې سره راتښتیدلي وو او د بې قاعدې فوځ هغې پلټنو ته مې هم پیغام ولیږلو چې د چا په قبضه کښې هغه شپږ توپې وے کومې چې زما پلار ولي محمد له ورکړے وے. د دې چیټو لیږلو نه پس زهٔ اودهٔ شوم ځکه چې ما درې شپې بالکل ارام نهٔ وهٔ کړے. زما په دې چیټو باندې سپاهیان دومره خوشحاله شول چې هغوي سمدستي زما تجویز ومنلو او د هغوي نه یو زر سړي پیاده زما د استقبال دپاره راغلل. ما هغوي له د ښهٔ سلوک ډیر اطمینان ورکړو. او د

هغې په عوض کښې هغوي د جنګ کولو قسم وکړو. هغوي ماته دا هم ووې چې د کوم تاریخ نه تهٔ تلے ئې مونږ ټول ډېر خفه وو او په دې انتظار کښې وو چې تهٔ واپس راشے او مونږه خپله بهادري د دغا باز شیر علي برخلاف وښیو.

مونږ ټول اخشي طرف ته روان شو او فیض محمد زمونږ پیشوائي وکړه خو هغه هم نیم پاګل وهٔ او ماته ئې ووې چې ما خو تهٔ نهٔ ئې راغوښتي بلکې زما فوځ تهٔ راغوښتې ئې. ما ورته ووې د دې هیڅ مضائقه نشته تهٔ هوښیار سړے ئې. ما فوځ له ډاډګیرنه ورکړه او ورته مې دا اطمینان ورکړو چې مونږ به یقیناً سردار فتح محمد باندې چې هغهٔ دوه زره بې قاعدې سوارهٔ او پنځهٔ زره ازبک سوارهٔ مونږ سره د جنګ دپاره مقرر کړي وو فتح حاصله کړو. د دې ازبک سورو په زړهٔ کښې زما د لاس نه د سزا خوړلو ویره پرته وه. ځکه چې هغوي وړومبے ما سره بیوفائي کړې وه. هغوي خپلو افسرانو ته کنځل کول چې تاسو مونږه د عبدالرحمٰن او د عبدالرحمٰن د پلار د خدمت نه وویستو حالانکې هغوي مونږ سره د وروڼو او د اولاد پشان سلوک کړے وهٔ. او مونږه ئې د اوښانو، اسونو او د ګډو مالکان کړي وو. فتح محمد خپل پیدل فوځ په نیم لک نومې قلا کښې اچولے وهٔ او رساله ئې بهر مرتب کړې وه. د هغهٔ فوځ د شهاب الدین د کمان لاندې وهٔ چې د وزیر احمد زوے وهٔ. دا وزیر احمد زما د پلار زوړ نوکر وهٔ او دهٔ سره ئې ډیر د مهرباني سلوک کړے وهٔ. په یوه موقع زما پلار وزیر احمد د بلخ په علاقه کښې د یو ښار ګورنر مقرر کړے وهٔ په دې ځاے کښې هغهٔ دوه لکه روپۍ د مالیې نه پټې کړې لیکن زما پلار هغه معاف کړو. او هغه او د هغهٔ زامن ئې په سلو سورو باندې خانان مقرر کړل. او هغوي ته ئې نشانونه او فوځ حواله کړو. ما شهاب الدین ته یوه چیټۍ ولیکله چې اے نمک حرامه ستا د مهربانۍ هغه سلوک چې ما تا سره کړے وهٔ هیر شو او اوس تهٔ زما د دشمنانو نوکري د شرابو د یو څو ترخو ګوټونو په عوض کښې کوے. فوځ ته ما دا شان ولیکل چې تاسو زما فوځ یئ زهٔ ستاسو برخلاف نهٔ جنګیږم کهٔ چرې تاسو ما وژل غواړئ نو زهٔ به سبا له قلا ته درشم او تاسو ما په ټوپکو وولئ او د خپل زوړ بادار د مرګ دپاره انعام و اکرام وصول کړئ. دې چیټۍ د هغوي زړونه ویلي کړل. سل تنه ئې په قلا کښې پرېښودل او نور ټول زما کیمپ ته راروان شول. شهاب الدین د هغوي د تیښتې نه خبر شو نو څهٔ قندهاري او ازبک سوارهٔ ئې د هغوي د راړولو دپاره ولیږل او جنګ ونښتو. څهٔ وخت چې ما خپلو سورو ته په میدان کښې د راوتو حکم وکړو نو هغوي ډېر په نیک نیتې رادٔ کړو او په دشمن ئې دا شان غلبه وکړه چې هغوي په ډېرې جلدۍ وتښتیدل. او شلور سوه سوارهٔ زمونږ لاس له راغلل. شهاب الدین هم تخت پل نه وتښتیدو او څهٔ وخت چې هغه وتښتیدو نو د تخت پل ټول سوارهٔ ما سره شامل شول او پلټنې خورې شوې. سردار فتح ټول مال په ځاے پرېښودو او درې سوه یا شلور سوه سورو سره تاشقرغان ته هم په هغه

موسم وتښتېدو چې په کوم ژۀ پروسه کال بخارا ته تښتېدلے وم. دا دنیا د تجربو د ازمېښتونو او د نشیب و فراز نه ډکه ده.

ژۀ چې بلخ ته راورسیدم نو فوځ ماته سلامي وکړه او ماته ئ خوش آمدید ووئیل. ما نائب غلام محمد تخت پل ته د رعیت د خلقو د دلاسه کولو دپاره ولیږلو او دوه ورځې پس ژۀ هم ورپسې لاړم. او فوځ ته مې د ښۀ سلوک او د خپلو نیکو ارادو اطمینان ورکړو. د فوځ د حالت ښۀ کولو نه پس ما علي عسکر خان له ترقي ورکړه او د توپخانې جرنیل مې کړو. او نظیر خان مې د پیاده فوځ جرنیل کړو. نورو افسرانو له ما د کرنیلۍ او د جرنیلۍ عهدې ورکړې. او هغه ټولو سپاهیانو له مې ترقي ورکړه چې څوک د سفر د ابتدا نه ما سره ملګري وو.

د دې نه لږې ورځې پس ژۀ تاشقرغان ته روان شوم چې هلته سردار فتح محمد شپږو پلټنو سره دیره وۀ. ژۀ په دې فکر کښې وم چې دا ټول ملک د هغوي نه خالي کړم. ژۀ بالکل بې مقابلې تاشقرغان کښې داخل شوم او د دوؤ ورځو د قیام نه پس ژۀ د هغه ځاے نه ایبک ته لاړم. فتح محمد او شهاب الدین چې دغه وخت په غوري کښې وو د هندو کش په لاره کابل طرف ته وتښتیدل. د دې تیښتې په دوران کښې شیخ علي چې د هزاره قبیلې نه وۀ د هغوي ټول مال اسباب تالا کړو. دغه وخت میرا اتالیق مړ شوے وۀ او د هغۀ زوے سلطان مراد د قطغن ګورنر او میر وۀ. هغه زما سلام له راغے او ما له ئ پنځۀ سوه اسونه، دوه سوه اوښان، دوه زره ګډان، څلور زره بوجه غله سره د څلویښتو زرو روپو او نور مختلف تحائف راولیږل. ما هغۀ ته د هغۀ د پلار د مرګ دعا وکړه او ورته مې ووئیل هر کله چې زما پلار د قطغن ملک ستا پلار له ورکړو نو زما پلار تاجک، معرب، زاړۀ افغانان او هزاره قبائل ځان سره وساتل او صرف د قطغن قوم ئ تاته درکړو. ژۀ به هم په دې قاعده چلیږم. هغۀ په جواب کښې ووې چې شیر علي خان هم دا شان کړي وو خو د دې نه علاوه هغۀ یو لک روپۍ سالانه په طور د مالیې زما نه اخستې او په دې هم هغه صبر نۀ شو او درې لکه روپۍ ئ په اخر کښې مانه وصول کړې او نورې ئ هم غوښتې.

په دې ورځو کښې ماله د بدخشان نه د ترۀ چیټي راغله چې ژۀ په فیض اباد کښې یم او د میر اتالیق لور سره وادۀ کول غواړم. او د وادۀ نه پس به بیا تاسره شامل شم. چونکې ما خپل ټول انتظام سر ته رسولے وۀ او ژمے په سر راروان وۀ او شیر علي خان هم هغه شان د کابل نه غیر حاضر وۀ له دې کبله ژۀ د بامیان په لوري روان شوم او د قره کوتل او د بدقاق د درو نه تیر شوم او په باجګاه کښې مې دمه وخوړه او د هغه ځاے نه بامیان کښې داخل شوم. ما هزاره میرانو له خلعتونه ورکړل او ورته مې ووئیل چې دوه زره خرواره غنم او اوربشې او یو زر خرواره ګُج او درې زره ګډان زما د فوځ دپاره جمع کړئ. ژۀ د دې سامان د فراهمۍ

دپاره په باجګاه کښې پاتې شوم. او د خپل ترهٔ انتظار مې هم وکړو. هغه يو مياشت پس راورسيدو او زهٔ سره د خپله فوځه د هغهٔ پيشوايي او د خوش آمديد دپاره لاړم. هغهٔ ماته د چترال د سفر ټول تکليفونه او مشقتونه بيان کړل. او راته ئ ووې چې د فيرنګيانو حکومت ما سره د سردمهرۍ سلوک کړے دے او په هغې زهٔ ځکه خفه يم چې زهٔ په جمرود کښې د خپل پلار دوست محمد خان او د حکومت برطانيه تر منځ د دوستۍ قائمولو ذريعه وم. هغهٔ ماته دا هم ووې چې په هندوستان کښې د غدر نه پس تمام خلقو دوست محمد خان ولمسولو چې تهٔ فيرنګيانو سره مهٔ شامليږه او غالباً چې د دې ورانې په سبب به د پنجاب حکومت د وړومبې په شان د افغانستان ماتحت راشي. کهٔ چرې دوست محمد خان دا خبره منلے وے نو دې کښې شک نشته چې دا وخت به پنجاب زمونږ په قبضه کښې وهٔ ليکن زما ترهٔ خپل پلار ته ووې چې تا له فيرنګيانو سره خپل اقرار پوره کول پکار دي. ځکه چې د دنيا په سترګو کښې به ستا نوم ډير بدنام شي کهٔ چرې تهٔ خپل لوظ مات کړے. نو زما د ترهٔ دا خيال وهٔ چې حکومت برطانيه به ماله د دې خبرې عوض راکړي او په دې غرض هغه هندوستان ته لاړو.

زما ترهٔ چې په دې بدسلوکۍ باندې پوهه شو نو هغه بنو ته لاړو او د بنو نه د سوات په لاره د اولياؤ ستوري يعنې د احمد ملاقات له لاړو هلته د يو شو ورځو د قيام نه پس هغه د دير په لاره چترال ته راغے. او د هغه ځاے نه د درهٔ کوتل په لاره بدخشان ته واپس شو. او بيا د قطغن او د غوري په لار باجګاه ته راورسيدو. ما د هغهٔ په رارسيدو ډيره خوشحالي وکړه او د خداے پاک شکر مې ادا کړو چې هغه زما د پلار په ځاے ما څخه راغلو. مونږه سمدستي د کابل سردارانو سره خط و کتابت شروع کړو او لس ورځي پس د غوربند په لاره په کوهستان کښې داخل شو. ما وړومبے ذکر کړے دے چې سردار شريف خان په قندهار کښې قيدي شوے وهٔ او د هغهٔ ورور امين خان تورتم درې ته زما برخلاف د جنګ کولو دپاره راستولے شوے وهٔ ليکن څهٔ وخت چې هغهٔ له زما د ترهٔ د طرفه چيټۍ ورسيدله نو هغه راغے او هغهٔ ته سلامي شو او خپل ورور سره چې هغه وخت مونږ سره ورترغاړه وتو، شير علي څومره کوتاه انديشي کړې وه چې هغهٔ دا شان سړي زمونږ برخلاف د جنګ دپاره راستولي وو چې د هغهٔ د ورور دوستان وو.

امين خان خپل ورور واپس کړو او هغوي بيا کابل ته واپس شول. زهٔ بيا د چريکار او سيد اباد په لاره تورتم درې کښې داخل شوم دغه وخت ژمے رارسيدلے وهٔ او واوره تر نامهٔ نامهٔ پورې پريوتې وه د رسائې په زور ما د اوښانو دپاره د لارې پيدا کولو په غرض لار صفا کړه اوښان مې بيا په واوره وګرځول چې پياده فوځ پرې تير شي. په اخر کښې مو توپخانه په ډيره مشکله په هغه لار رابوتله زمونږ سفر دومره مشکل وهٔ چې په ټوله ورځ کښې مونږ

صرف دوه ګینټې مزل کولے شو. په دې طریقه مونږ ډیره ورو ورو لار وهله ولې اخر د ترک هـال مـقـام ته راورسیدو. د شیر علي فوځ په خواجه کښې پروت وۀ ما د چارچاپیره غرونو نه فـائـده واخستـه او پـه سوکو باندې مې فوځونه مقرر کړل او د دشمن د حملې په انتظار کښې کښیـنـاستـم خـو هـغـوي هیڅ لاس پښې ونۀ خوځول ما په دوربین کښې ولیدل چې د کابل د حفاظت دپاره هیڅ باقاعده انتظام نۀ دے شوے.

هـغـه شپـه مـونږ دمه وکړه په بل سحر ماله د شیر علي د زوي د طرف نه د کابل نه یو خـط راغـے چې هغې کښې هغۀ زما د پلار د پرېښودو وعده کړې وه او دا ئې لیکلي وو چې کۀ تـۀ څـلـویښت ورځو پورې په کابل حمله ونۀ کړې نو د ترکستان علاقه به زۀ تاسو ته پرېږدم. ما دا تجویز منظور کړو. ځکه چې په دومره سخته واوره کښې جنګ کول ناممکن وو. او ما دا خیـال وکـړو چـې کـۀ چـرې هـغـوي په خپل لوظ ټینګ وو نو مونږ به په راتلونکي سپرلي کښـې بـلـخ تـه واپـس شـو. پـه دې منځکښې سردار محمد رفیق خان او جنرل شیخ میر چې داوړه د سـرادر ابـراهـیـم درباریان وو په خپلو کښې جګړه وکړه او چونکې شیخ میر سره ډیر سړي وو هغۀ محمد رفیق له شکست ورکړو. محمد رفیق ډیر هوښیار سړے وۀ او د شیر علي خـان وزیـر وۀ. د دې شـکـسـت نـه پس هغۀ ته پته ولګیده چې زما د قتل سازش شوے دے. له دې کبـلـه هـغه شپه په شپه د کابل نه راوتښتیدو او په تګاؤ کښې ئې پناه واخسته او څۀ وخت چـې زۀ چـریـکار ته راورسیدم نو مونږ سره شامل شو او د شیر علي خان د حکومت د ټولو بد انتظامو اطلاعات ئې راکړل. دا سړے اوس مونږه سره شو او چونکې مونږه تر څلویښتو ورځو پـورې د جـنـګ د نـۀ کـولـو اقـرار کـړے وۀ په دې وجه مونږه سره د خپله فوځه کوهستان ته واپس شو. زما ترۀ په چریکار کښې پاتې شو چې د کابل نه اوویشت میله لرې دے.

اخـر د مـارچ میاشت راغله او د شیر علي د زوي د وعدې پوره کیدلو وخت تیر شو. هـر کـلـه چـې زمـا هیـڅ امید پاتې نشو نو په کابل مې پیشقدمي وکړه. او د ډوډه مست قلا ته راورسیـدم اعظم دین خان په دې ځاے کښې یو زر بې قاعدې سپاهیانو سره زما د پیشقدمۍ د بـنـدولـو دپـاره راستـولے شـوے وۀ هغۀ د یو څو ډزو نه پس ډوډه مست پرېښودو او کابل ته واپـس شو. زما ترۀ یو لویې دستې سره په کابل ورننوتو. او چې څۀ وخت هغه د سردار شاهین خـان کـور تـه ورنـنـوتو نو سرداران او وزیران د هغۀ سلام له راغلل. په دې اثنا کښې چونکې سـردار ابـراهـیـم خـان د کـابـل قـلا مستـحکم کړې وه له دې کبله زما فوځ نهۀ ورځې د هغې مـحـاصـره وکـړه او د هـغې نه پس جنرل شیخ میر او نورو د قلا دروازې پرانستې د شیر علي زوے دغـه وخت په خپل حرم کښې ناست وۀ بهر ته راووتو او زمونږ سلام له راغے دغه شان مونږ کابل واخستو او د شیر علي زوے قندهار ته وتښتیدو.

د شپږو هفتو د امن و امان نه پس مونږ له خبر راغے چې شیر علي خان زمونږ په لوري

راروان دے ما د دې دپاره خپل فوځ تيار کړے وۀ او ما خپل سوارۀ په دريو حصو کښې تقسيم کړل. يوه حصه مې په کابل کښې پريښوده او نورو دوؤ حصو سره زۀ د سرخ سنګ غونډو ته روان شوم. په کابل کښې زما ترۀ سره د دې سورو د پريښودو وجه دا وه چې د فتح سنګهه يوې لُور د جلال اباد د طرف نه په کابل باندې حمله کوله. څکه چې څۀ فوځ په جلال اباد کښې په تير شوي ژمي کښې مقيم وۀ ما خپل ترۀ ته درې زره نور سپاهيان چې ما اوس اوس نوکران کړي وو هم پريښودل ما څان سره نهۀ زره سوارۀ او ديرش توپې واخستې ما مير رفيق ته حکم وکړو چې تۀ غزني پورې ما سره لاړ شه او شيخ مير مې په کابل کښې خپل ترۀ سره پريښودو. هر کله چې زۀ غزني ته ورسيدم نو ماته پته ولګيده چې نظر وردګ د غزني قلا مضبوطه کړې ده ما د هغې محاصره وکړه ليکن هغه دومره مضبوطه وه چې زما د قچرباترۍ د توپو دپاره د هغې اخستل ډير مشکل وو. او ماته دا عقل مندي ښکاره نشوه چې زۀ خپل ګوله او بارود چې ما سره په محدود مقدار وو هسې ضائع کړم ذ قلا دننه فوځ ته به روزانه د امير د طرف نه ډاډګيرنه راتله چې زۀ شلويښت زره سپاهيانو سره د هغوي د امداد دپاره راروان يم. يوولس ورځې بې ډزه بې ډوزه تيرې شوې اخر د شير علي خان فوځ د غزني نه د يوې ورځې په مزل پاتې شو. او زما مخبرانو ماله خبر راوړو چې د هغۀ ټول فوځ ښۀ منظم دے او په شمار کښې شلويښت زره دے چې دا مې واوريدل نو مير رفيق خان سره مې مصلحت وکړو او مونږ دواړه په دې متفق شو چې د دومره لوے فوځ برخلاف د دومره لږو خلقو په ذريعه په صفا ميدان کښې جنګ کول ناممکن دي. له دې کبله مونږ يوې تنګې درې ته واپس شو. چې هلته به زمونږ لږ فوځ ته د کاميابۍ زيات اميد وي مير رفيق وړومبے په دې تجويز ناراض غوندې شو او وې وئيل چې په دې به غالباً فوځ کمزور دله شي او وۀ به تبنتي کۀ مونږ هغوي واپس روان کړو. ليکن ما د هغۀ دا اعتراض نامنظور کړو او هغۀ ته مې ووئيل چې ما خپل فوځ په داسې طريقه اموخته کړے دے چې هغوي به ما سره هر چرته ځي او هغوي د نورو معمولي افغانانو په شان نۀ دي. سيد اباد ډيره تنګه دره ده او د هغې د يو سر نه تر بله سره پورې وړې وړې غونډۍ دواړه طرف ته پرتې دي. مونږه هلته د شپې ورسيدو زمونږ د واپسۍ په وخت شير علي لس زره هراتي او قندهاري سوارۀ زمونږ د عقب په فوځ باندې د حملې دپاره راوليږل او هغوي ته ئ حکم وکړو چې د کابل په لاره باندې هم قبضه وکړئ چې د عبدالرحمٰن د تيښتې لاره بنده شي کۀ چرې هغه سبا جنګ بائلي. د دشمن دا دستې زما هغو شپږو سوؤ سورو سره مخامخ شوې چې ما په طور د هراول مخکښې ليږلي وو دې سورو ښۀ په بهادرۍ جنګ وکړو او ورو ورو ئ راواپس کيدل شروع کړل. او ماته ئ د خپل تکليف خبر راواستولو خوچې څۀ وخت ماته د هغوي قاصد راورسيدو نو ما هغوي له دوه پلټنې د پيادو سپاهيانو د امداد دپاره واستولې. دا سپاهيان ناساپې وررورسيدل او چونکې

د شیر علي سوارهٔ ټول په یو ځای راجمع شوي وو په دې وجه یو څو ډزو د هغوي ډیر نقصان وکړو او په تیښته ئې مجبور کړل. زما سپاهیان سره د مال غنیمت سرخ رویه واپس شول او مونږ سید اباد ته خپله پیشقدمي بدستور جاري وساتله.

هرکله چې شیر علي د خپل شکست نه خبر شو نو هغهٔ هغه هومره یوه بله فوځي دسته د هغوي امداد له راولیږله ولې هرکله چې هغوي میدان خالي ولیدو او زما فوځ واپس روان وهٔ نو هغوي امیر له بیا واپس روان شول. او ورته ئې ووئیل چې عبدالرحمٰن زمونږ د فوځي طاقت نه کمزوردله شو او د جنګ نه ئې مخ وګرځولو. په دې امیر د فتح د توپو سلامي وکړه او رسالې ته ئې زمونږ د تعاقب او زما د ګرفتارۍ حکم وکړو. مونږ چې شنګاؤ ته نهٔ بجې راورسیدو نو دې رسالې ناساپې مونږه رالاندې کړو. زهٔ د باربردارۍ د څاروؤ شا ته سره د څلورو پلټنو او د قچرو دولسو توپو روان وم. ما سردار رفیق سره د یو ډویژن د مال اسباب ښئ طرف ته او جنرل نظیر سره د عبدالرحیم مې د باربردارۍ د څارو مخې طرف ته مقرر کړي وو. هرکله چې د دشمن رساله مونږ ته ډیره رانزدې شوه نو زهٔ تیز تیز مخکښې روان شوم چې د لارې په خوا کښې د یوې لوېې سمستې د موجودګۍ نه فائده واخلم. او په هغې کښې یوه پلټنه پټه کړم. دې پلټنې ته ما حکم وکړو چې څهٔ وخت زما د توپو ډزې واؤرې نو سمدستي په دشمن حمله وکړئ. بیا ما خپلو سړو ته حکم وکړو چې ورو ورو ځئ. او څهٔ وخت چې ما ولیدل چې رساله د سمتې نه راتیره شوه نو ما خپلې دولس توپې دې رسالې ته مخامخ کړې او ګوله باري مې پرې شروع کړه. دې سره سم زما هغه پلټن چې د دشمن په خوا کښې پرته وه راووته او ډزې ئې شروع کړې. نتیجه دا شوه چې د شیر علي یو زر سوارهٔ په میدان کښې پریوتل او بیا د یوې معمولي جګړې نه پس باقي ټول وتښتیدل. مګر باوجود د دې بیا زر راټول شول او زمونږ تعاقب ئې وکړو لیکن د حملې کولو زړهٔ ئې ونهٔ کړې شو. د دشمن دې سړو تر هغې پورې زمونږ تعاقب وکړو تر څو چې ما د یو زر سورو په ذریعه په هغوي حمله نهٔ وه کړې. دا حمله ښه په کامیابۍ وشوه او یو نیم سو سړي د دشمن نه ګرفتار شول. دا سړي ما رها کړل او هغوي ته مې ووئیل چې زما د منظم فوځ برخلاف تاسو دپاره جنګ کول ناممکن دي. هرکله چې هغوي زما د مهربانۍ دا سلوک ولیدو او زما د سپاهیانو دا بهادري ئې وازمائیله نو هغوي شیر علي له واپس لاړل. په لاره دې سورو د وردګو د رعیت خلقو د سلو تنو سرونه پریکړل او شیر علي خان ته ئې پیش کړل. او ورته ئې ووې چې دا د افغان سړو سرونه دي. لیکن ډیر وخت نهٔ وهٔ تیر شوے چې د وردګو د دې قتل شوو رشته داران شیر علي له په شکایت راغلل او د رسالې د دې عمل فریاد ئې ورته وکړو. شیر علي چې د هغوي دا فریاد واوریدو نو د خپلو سورو مشر ئې راوغوښتو او ورته ئې ووئیل چې رښتیا رښتیا خبره وکړه دې سړې ووئیل چې د عبدالرحمٰن سړو سره جنګ کول ډیر ګران کار

دے او کۀ چرې میدان بیابان وے نو زمونږ ټول سوارۀ به راګیر شوي وو او یو سړے به هم نۀ وۀ خلاص شوے.

امیر غزني باندې پیشقدمي وکړه او څلور ورځې ئې هلته دمه وکړه او زما پلار ئې په قلا کښې بندي پریښودو. او سید اباد ته ئې زما برخلاف پیش قدمي جاري وساتله. ما په سیداباد کښې ډیره مضبوطه مورچه نیولے وه. توپې مې د غرونو په سر په ترتیب لګولې وے او د جنګ په انتظار کښې ناست وم. د څلورو ورځو د مزل نه پس امیر زمونږ د مورچو بالمقابل ډیره ولګوله. ما د دې نه وړومبے اونچې نومے یو کلے په دې وجه تالا کړے وۀ چې د شلو ورځو خرڅ خوراک حاصل کړم. ځکه چې د اونچي کلي خلقو په ما باندې د خوراک خرڅولو نه انکار کړے وۀ. ما سره کل فوځ اووۀ زره سپاهیان وو او امیر سره پنځویشت زره سړي وو. ډیر لږ ساعت پس جنګ ونښتو او ډیره سخته جګړه وشوه. د توپو لوګو قریباً قریباً نمر پټ کړو په دې طریقه تر څلورو بجو پورې جنګ روان وۀ. ماته معلومه شوه چې زما نه قریباً دوه زره سړي مړۀ او زخمیان شول او د شیر علي د نقصان اندازه زمونږ په درې چنده وه. څۀ وخت چې زما یقین راغے چې خدائے پاک مونږ له فتح راکړه نو ما د شاهسوارو یوه دسته مقرر کړه چې په تاخت غزني ته لاړ شي او زما پلار راخلاص کړئ لیکن د هغوي د رسیدلو نه وړومبے چې سنتریان زما د فتحې نه خبر شول نو هغه ئې پریښې وۀ او هغۀ ته سلامیان شوي وو. کوم سرداران چې هغۀ سره هغوي ازاد کړي وو د هغوي نومونه دا دي : سردار سرور خان د سردار اعظم خان زوے، سردار شاهنواز خان، سردار سکندر د هغۀ ترۀ او محمد عمر د سردار سلطان جان ورور (چې د هرات ګورنر وۀ) دا مؤخر الذکر سړي په هرات کښې قیدیان شوي وو. سابق امیر چې ولیدل چې غزنے زمونږ لاس ته راغے نو قندهار ته وتښتیدو او څۀ وخت چې هغۀ شکست وخوړو نو د هغۀ رساله چې دراصل زما د پلار وه د هغۀ نه زمونږ طرف ته راواوړیده. د جنګ د شروع کیدو نه وړومبے ما خپل ترۀ ته لیکلي وو چې راشه او ما سره امداد وکړه لیکن اګر چې هغه مونږ ته په لږه فاصله کښې رارسیدلے وۀ هغه ما سره شامل نشو او د لرې نه ئې د جنګ تماشه کول بهتر وګڼل. د هغۀ زوے محمد عزیز چې د اوولسو کالو وۀ په ډیرې بهادرۍ زما په خوا کښې وجنګیدو زما پلار هم ماته زما د فتح په خوشحالۍ کښې یوه چیټۍ ولیکله. زۀ په دې چیټۍ خوشحاله شوم او د خدائے پاک حمد مې وکړو. د دې چیټۍ په جواب کښې ما هغۀ ته ولیکل چې کۀ اجازت وي نو زۀ به د سلام کولو دپاره حاضر شم لیکن بیا ئې ماته ولیکل چې زۀ تاسره د شاملیدو دپاره درروان یم. له دې کبله دا به ښه وي چې تۀ خپل فوځ یوائې مۀ پرېږده.

تر څلورو ورځو پورې زما سپاهیانو د شیر علي خان خزانه او سامان لوټ کړو او په پنځمه ورځ زما پلار راورسیدو. زۀ خپلو سپاهیانو سره د هغۀ د استقبال دپاره ووتم. زۀ د

خپـل اس نـه کـوز شوم او د هغهٔ پښې مې ښکل کړې او د هغهٔ په رها کیدو مې د خدایے پاک ډیـر ډیـر شکر ادا کړو. په بله ورځ ما شیر علي پسې تر هراته پورې اراده وکړه او زما پلار دا خبـره مـنـظوره کړه چې زما په غیر حاضرۍ کښې به هغه د ټولو معاملاتو نګراني کوي. لیکن زمـا تـرهٔ دا خبـره نـهٔ مـنـلـه لـه دې کبله زهٔ ډیر خفه شوم او ما هغهٔ ته ووئیل چې کهٔ چرې تهٔ د جـنـګ د خـطـرو نـه ویـریـږې نو تهٔ ما سره هله شامل شه چې زهٔ شیر علي ونیسم. زما په پلار بـانـدې هـم زما د ترهٔ د اعتراضاتو اثر وشو او هغه هم هغهٔ سره مل شو. نتیجه دا شوه چې مونږ ټـول کـابـل تـه روان شـو. د هـغـه ځـایـے خـلقو زمونږ ډیر په خوشحالۍ استقبال وکړو او ډیر خیراتونه ئې ورکړل. مونږ په محل کښې داخل شو او ما د خپل پلار په نوم په حیثیت د بادشاه خـطـبـه ولوسته او سردارانو ټولو په جمع هغهٔ له په امیر کیدو باندې مبارکي ورکړه. او هغهٔ ته ئې ووئـیـل چې چـونـکـې تـهٔ د دوسـت محمد خان مشرے زوے ئې او د هغهٔ جائز وارث ئې نو مـونـږه ستـا په فرمانروا کیدو خوشحاله یو. هغوي دا هم ووئیل چې امیر شیر علي خان صرف یو څو فوځې افسرانو په طور د امیر تسلیم کړے وهٔ لیکن د هغهٔ حکومت زمونږه هیچرې نهٔ وهٔ خـوښ شـوے. او نـهٔ مونږ دا خبره ښه ګڼلې وه چې هغهٔ خپل سکه ورور قتل کړے وهٔ او افضل خـان ئې قیـد کـړے وهٔ. هـغـوي ټـول د شیـر علي د زوي په مرګ چې د دهٔ د ګناه په وجه قتل شوے وهٔ هم ډیر غمژن وو.

اوړے ډیـر پـه خـوشـحالۍ تیر شو او زما پلار د حکومت کار چلولو او ترهٔ مې د فوځ انتـظـام کـولـو. پـه مـنـي کښـې مـاتـه امیـر ووئیـل چې شیر علي د قندهار نه په کابل باندې د پیشقدمۍ تیارۍ کړې دي ما ورته په جواب کښې ووې چې کهٔ چرې تاسو ماته زما د فتحې نه پس هغهٔ پسې د تلو اجازت راکړے وے نو هغه به د جنګ دپاره د تیارۍ کولو قابل نهٔ وهٔ پاتې شـوے. هـغهٔ بیا ما نه تپوس وکړو چې ستا د روانګۍ د تیارو دپاره څو ورځې پکار دي ما ورته ووئـیـل چې دا ټـوله خبره زما د سترګو په وړاندې وه له دې کبله ما خپل فوځ تیار ساتلے دے چې د یـوې لـمـحـې پـه نـوټـس زهٔ د روانیدو دپاره تیار یم. نو په دې وجه هم نن زهٔ د روانیدو دپـاره تیـار یـم. هغه په دې ډیر حیران شو او ماته ئې ووې چې دا وړومبے ځل دے چې د پښتنو فـوځ جـنـګ تـه د وتـو دپاره هم په هغه ورځ تیار دے چې په کومه ورځ د جنګ اعلان شوے دے. د امیر نه بغیر د رخصت اخستو ما هدایات جاري کړل او په ځلور ګینټې کښې زما فوځ چې پـه هـغـې کښـې دولـس زره سپـاهیـان وو، د کـابل د محل په خوا کښې خیمه زن شو او دبورټي تـه روان شول. د روانیدو نه وړومبے زما پلار زما ټول انتظامات معائنه کړل لیکن زما پـه تیارۍ کښې ئې هیڅ کمے ونهٔ لیدو. امیر بیا زما ترهٔ ته مخ راواړولو او تپوس ئې ترینه وکړو چې آیـا ستـا فـوځ عبدالرحمٰن سره د روانیدو دپاره تیار دے؟ هغهٔ په جواب کښې ووئیل چې مـاسـوائې د خیمو نه زما بل هیڅ څیز تیار نهٔ دے او په یوه میاشت کښې به زهٔ د سفر دپاره تیار

شم. ما هغهٔ ته ووئیل چې زهٔ به د غزني په مقام ستا د راتلو انتظار کوم چنانچه د خپل پلار د لاسونو ښکلولو نه پس زهٔ غزني ته روان شوم. هلته د شلو ورځو د انتظار نه پس ما واوریدل چې شیر علي قلات توخي ته رارسیدلے دے له دې کبله ما امیر ته خط ولیکلو چې زما د ترهٔ نه تپوس وکړه چې ستا ما سره د شاملیدو کله نیت دے ځکه چې تاسره صرف درې زره سوارهٔ دي نو دا ځومره د افسوس خبره ده چې زما ټول فوځ دې ستا په خاطر انتظار کوي. ما دا هم ورته ووئیل چې زما رساله کښې څلور زره سوارهٔ دي او دا تعداد زما دپاره کافي نهٔ دے. نو کهٔ چرې زما ترهٔ څهٔ موده نور هم پاتې وي نو ماله سمدستي نوره رساله رالیږل پکار دي. د دې چیټهي لیکلو نه پس زهٔ مُکر ته روان شوم. شیر علي چې دا واوریدل نو قلات ئې مضبوط کړو او هلته دیره شو. مکر کښې ما د ترهٔ دولس ورځې انتظار وکړو او بیا زهٔ قلات ته روان شوم. په بله ورځ شیر علي لس زره سوارهٔ د شاه پسند خان او د فتح محمد د کمان لاندې د دې غرض دپاره مقرر کړل چې هغوي زما د کیمپ نه چارچاپیره ټول ملک تالا کړي ما د یو مخبر نه واوریدل چې دا سړي زمونږ نه شپږ میله لرې پټ دي. او هر کله چې زهٔ بیا چشمهٔ پنجک نومے ځاے ته ورسیدم نو ماته خبر راغے چې دې سړو شپه په یوه زړه قلا کښې تیره کړې ده. په دې ما جنرل ناظر خان او عبدالرحیم ته حکم وکړو چې په زرو د رسالي په سورو، یو زر دراني سورو په دوؤ پلټنو او شپږو توپو په دې قلا شبخون وکړئ. د دې حکم تعمیل باقاعده وشو. هغوي په دشمن ناګهانه راپریوتل او نتیجه دا شوه چې هغوي وتښتیدل. درې سوه مړهٔ او زر قیدیان ترینه په قلا کښې پاتې شول. زما د فوځ نه صرف یو سړے مړ شو ځکه چې دشمن د جنګ کولو هڅو قصد ونهٔ کړو. په دې اثنا کښې زما ترهٔ سره د رسالې او پلټنې راورسیدو او ما هغهٔ ته د ټولو واقعاتو خبر ورکړو. کوم ځاے کښې چې مونږه خیمه زن وو د هغه ځاے نه دوه لارې قندهار ته تلې یوه په قلات غلزي او بله د هوتکي قبیلې په ملک کښې نوا ارغستان ته ځي. او بیا د منډے حصار په ملک کښې قندهار ته ځي. د دې دواړو جداوالے یو وچت غر راولي. نو زما دا خیال پیدا شو چې چونکې شیر علي د قلات د مستحکم کولو دپاره ډیر تکلیف وچت کړے دے له دې کبله کهٔ چرې زهٔ د ارغستان په لاره لاړ شم نو د هغهٔ ټول محنت به رائګان لاړ شي. دا خبره ما خپل ترهٔ ته وکړه چنانچه هغهٔ زما تجویز سره اتفاق وکړو او مونږه د ارغستان په لاره روان شو.

زما د مارچ طریقه به اکثر دا شان وه چې سامان او اسباب به ما مخکښې روان کړو او حکم به مې وکړو چې زما تر رسیدو پورې هیچرې د ښاروو نه مال مهٔ کوزوئ. د مال اسباب نه پس به جنرل ناظر خان او عبدالرحیم سره د یو څو نورو افسرانو روان وو. زهٔ پخپله د فوځ په یوه ډډه روان وم چې څوک د اړخ د طرف نه حمله ونهٔ کړي. هر کله چې مونږ دیوالک نومے یو ځاے ته راورسیدو نو ما د دیره کیدو حکم وکړو. زما ترهٔ او زهٔ قریباً د میل څلورمه

حصه وروستو سره د دوؤ توپو او دوؤ سوؤ سورو پاتې شو. دغه وخت زما څهٔ سورو ما له خبر راکړو چې دا شان معلومېږي چې د ګډو يوه رمه مونږ طرف ته راروانه ده. ليکن څهٔ وخت چې ما په دور بين کښې وکتل نو ماته معلومه شوه چې د ګډو دا کنډک درحقيقت د دشمن د فوځ يوه حصه وه. په دې ما دوؤ سوؤ سورو ته چې ما سره وو حکم وکړو چې تاسو په يوې غونډۍ باندې څلور څلور يا پنځهٔ پنځهٔ تنه يو ځاے خيژئ او راکوزيږئ. د دې دپاره چې مونږ د دشمن په نظر کښې ډير ښکاره شو او دغه شان وخت په لاس راشي. ما عبدالرحيم له هم يو سړے وليږو چې ډير جلد مونږ له راشه او د جنګ دپاره تيار شه. په لږ ساعت کښې د شير علي ټول فوځ په دې ترتيب راښکاره شو يعنې لس زره سړي د پشت رود د طرف نه، درې زره د هرات د طرف نه، لس زره قندهاري او څلور زره د شير علي خپل سوارهٔ د کابل له لوري نه، دا ټول فوځونه مونږ طرف ته راروان وو. ماته خپلو افسرانو ووئيل چې تاله سمدستي خپل باقي فوځ سره يو ځاے کيدل ضروري دي. ليکن په دې وجه زهٔ د دې تجويز برخلاف وم چې دشمن ته به زما لږ والے معلوم شي. او ممکن ده چې د هغوي رساله مونږ هغوي سره د شامليدو نه منع کړي ولې کهٔ چرې مونږ هم دغه شان متواتر خوځو راخوځو او اوړونه بلوؤ نو قبل د دې نه چې هغوي په مونږ حمله وکړي د هغوي به زمونږ د اصلي تعداد په معلومولو کښې څهٔ وخت ولګي. دې سره هغوي اتفاق وکړو ليکن هغوي په دې نهٔ پوهيدل چې ما سره څومره فکر زياتيدلو يو طرف ته دشمن په جنګي ترتيب سره خپل ځان مرتب کولو ليکن صفا معلوميده چې هغوي په مونږ باندې حمله د دې دپاره وروستو وروستو کوله چې هغوي زمونږ اصلي طاقت معلوم کړي. د دې برخلاف زمونږ فوځونه دومره لرې وو چې هغوي ته زما د سړو په رسيدلو کښې او مونږ له د امداد په راکولو به وخت لګيدو. اخر کار ما عبدالرحيم د لرې نه وليدو ليکن قبل د دې نه چې هغه مونږ سره شامل شوے وے دشمن زمونږ په توپو حمله وکړه (دې توپو د دشمن د لوے تعداد په وجه هغوي ته هيڅ نقصان نشو رسولے). دشمن زما دوه توپچيان مړهٔ او يو ئ زخمي کړو او په توپو ئ قبضه وکړه. او نور توپچيان ترينه خلاص شول. هر کله چې هغوي زما د دې دوؤ توپو په راښکلو کښې مصروف وو ما دوه پلټنې د پيادو وروليږلې او دوه مې نورې د عبدالرحيم د کمان لاندې د دې غرض دپاره مقرر کړې چې د هغوي نه چارچاپيره راتاؤ شي. په دې جګړه کښې د دشمن نه پنځهٔ سوه سړي او ډير اسونه مړهٔ شول او مونږ توپې راخلاصې کړې. ما د باقي سورو د قلات سهيل طرف ته تعاقب وکړو هر کله چې هغوي تهله نومې کلي ته مازيګر ناوخته ورسيدل نو هغوي د تبک سرّ نومې غونډو په سر ديره شول. مونږ هم د هغوي په خوا کښې ديره شو. چې د هغه ځاے نه مونږه شير علي د قلات په قلا کښې د دوربين د امداد نه بغير ليدے شو. ما دا هم ليدے شو چې د دې شکست خورده سورو رارسيدلو د باقيمانده فوځ په زړهٔ کښې

بزدلي پيدا کړه. او هغوي په خپلو مورچو کښې ډير په کمزور دلى بلندۍ اخوا ديخوا ګرځيدل. ما په ميدان جنګ کښې د خپل فوځ د مرتب کولو دپاره ډير محنت وکړو او د توپو ايښودو دپاره مې غونډۍ خوښې کړې. ما سره د شپږو شپږو سوؤ سپاهيانو دولس پلټنې، دوه زره د رسالې سوارۀ او يو زر دراني سوارۀ وو. زما باقي سرې په کيمپ کښې پاتې شول. تر تيارې پورې زۀ په غونډۍ ولاړ وم او بغير د دشمن د علم نه څۀ وخت چې تيارۀ شوه نو ما خپل فوځ کيمپ ته واپس بوتلو او دوه بجې د شپې هلته ورسيدو. د هغې وخت نه د خداے پاک په فضل سره باران د بلې ورځې تر لسو بجو پورې ووريدو. لارې ختمه شوې او خيمې لوندې شوې. مونږ دوه ورځې قيام وکړو او بيا قندهار طرف ته روان شو. شير علي هم په هغې طرف روان شو. او چونکې زمونږ تر منځ د غرونو يوه سلسله وه نو زما فوځ په يو طرف روان وو او د هغۀ په بل طرف. زمونږ دا اميد وۀ چې مونږ به د شير علي نه وړومبے قندهار ته ورسيږو او د هغۀ دا اراده وه چې هغه مونږه په لاره رامنع کړي. مونږ دغه شان پنځۀ ورځې مزل وکړو. زمونږ د فوځونو په منځ کښې پنځۀ زره قدمه فاصله وه ليکن يو فوځ هم په بل باندې حمله کول نۀ غوښتل.

په پنځم تاريخ مونږ يو داسې مقام ته ورسيدو چې د جنګ دپاره ډير موزون وۀ او شير علي هم هلته قيام وکړو. ما خپلې يو څو توپې سره د نشانونو د غرۀ په سوکو دا شان ولګولې چې دشمن پر ې وغليږي او نورې توپې مې د غرونو شاته پټې کړې. ما ټول فالتو اسباب مخکښې وليږلو او جنرل ناظر او عبدالرحيم ته مې حکم وکړو چې درې پلټنو يو زر بې قاعدې فوځ سره په هغه سمستو باندې قبضه وکړئ کومې چې د لارې په خوا کښې وے او د شير علي لار په هغې باندې وه. شير علي چې وليدل چې ما په دې لاره قبضه وکړه نو هغه ما سره په جنګ کولو مجبور شو. او خپل سرې ئې په جنګي نظام کښې ودرول. هر کله چې هغۀ د غرۀ په سوکو زما يو څو تنه وليدل او دا ئې هم وليدل چې زما اسباب مخکښې لاړو نو هغۀ خپلو افسرانو ته ووې چې اوس مونږ له حمله پکار ده. ځکه چې عبدالرحمٰن سره ډير لږ سرې دي په دې وجه هغۀ زما په هغه سورو باندې چې د غرۀ په سوکه وو حمله وکړه ولې دې سره سم ما خپل پټو شوو سړو ته د راوتو حکم وکړو او څۀ وخت چې جنګ ډير سخت شو او دواړه دډې ښې ستومانه شوې نو ما عبدالرحيم او جنرل نظير ته سوال جواب وليږلو چې د دشمن په ډډه او په عقب باندې حمله وکړي. د دې نه لږ ساعت پس د شير علي د فوځ پښې وخوئيدې او قندهار ته وتښتيدو. ما خپلو سړو ته د هغۀ د اسباب د تالا کولو اجازت ورکړو. پنځۀ ديرش توپې هم زمونږ لاس ته راغلے. زۀ خپل کيمپ ته لاړم چې ديارلس ميله لرې وۀ او ښۀ اودۀ شوم ځکه چې د وروستنو پنځلسو ورځو د فکر او د وړو وړو جګړو په وجه ما د دوؤ دريو ګينټو روزانه نه زياتي خوب نۀ وۀ کړے. زۀ بل ماښام ته راويښ شوم. ډوډۍ مې وخوړه

او بیا اوده شوم او تر بله سحره پورې اوده وم. د دومره اوږد ارام نه پس زه تندرست شوم او په دې فتح مې د خدای پاک شکریه ادا کړه.

په بله ورځ زه سره د خپل تره قندهار ته لاړم. او پنځه ورځې پس ښار ته وردننه شوم. شیر علي نیغ هرات ته تښتیدلے وه. مونږ چې قندهار ته ورسیدو نو زما تره په دې فکر کښې ولګیدو چې هغه کابل ته لاړ شي او ما وروستو پریږدي. لیکن ما انکار وکړو او هغه ته مې ووئیل چې زه به کابل ته لاړ شم او ته په طور د قندهار د ګورنر پاتې شه. ما د باربرداری د څاروو د پیدا کولو او د خپلو سرو او د توپخانې دپاره مې د سورلی د اسونو د اخستو انتظام وکړو. ځکه چې کوم څاروي ما سره وو هغه ټول د ژمي په وجه کمزوري شوي وو او دا ضروري وه چې هغه د څر دپاره ایستلے شوے وے او ښاربه شوے وے.

په دې مقام کښې ماله ضرور د خپل تره په فوځ کښې د فتح محمد خان نومے یو افسر ذکر کول پکار دي چې د سلطان احمد خان زوے وه. د دې سړي پلار شیر علي خان د هرات په جنګ کښې ګرفتار کړے وه او زما پلار هغه رها کړے وه. او هغه ئ د هزاره جاتو ګورنر کړے وه. هغه بیا د دې عهدې نه وتښتیدو او شیر علي سره شامل شو. هغه هغه د رسالې مشر کړو او اوس هغه زما برخلاف جنګیدلو. د هغه سړي د اخلاقو بابت به څوک څه ووائي چې د هغه کس برخلاف جنګ کوي چې هغه د هغه د رهایی باعث شوے وي او بیا هغه سړې سره شامل شي چې چا هغه وړومبے قید کړے وه. یو بدطینته سړے په تعلیم باندې ښه سړے کیدے نشي. په باغونو کښې ګلونه کیږي او په ځنګل کښې ازغي.

## څلورم باب

د شیرعلي خان بلخ ته رسیدل، او د هغه ځاے نه سره د فیض محمد خان د کابل په طرف روانیدل، د عبدالرحمٰن خان په هغه حمله کول، د فیض محمد خان قتلیدل او د شیر علي خان واپس بلخ ته تښتیدل، د محمد افضل خان وفات کیدل، او د هغه په ځاے د هغه ورور محمد عظیم خان امیر کیدل، د عبدالرحمٰن خان بلخ ته روانیدل او د بلخ د میرانو سره جنګونه کول، او د نیملک په مضبوطه قلا قابض کیدل، بیا د عبدالرحمٰن میمنې ته روانیدل، او دلته د شیر علي خان په کابل قبضه کول، د غزنې په مقام د شیر علي خان سره جنګ انښتل او د عبدالرحمٰن خان شکست خوړل، د عبدالرحمٰن خان او د محمد عظیم خان په یو وړد سفر روانیدل، د وزیرو او محسودو او بلوچستان په علاقه تیریدل، د خیوا او د سیستان په لاره ایران ته رسیدل، په مشهد کښې د څو ورځو قیام نه پس واپس خیوا ته راتلل او بخارا ته رسیدل، دې نه پس د روس علاقې ته تلل او په سمرقند کښې د یو عزتمند میلمه په حیثیت مقام کول.

اوس زه د لوستونکو توجه بلخ طرف ته راکاږم. ما وړومبے دا ذکر کړے دے چې څه وخت ما دا ملک واخستو نو ما فیض محمد سره د ناظر حیدر خان او جرنیل علي اصغر خان

د دې ملک ګورنران مقرر کړل. څۀ وخت چې زۀ باميان ته راورسيدم نو فيض محمد، هم جرنيل سره او هم ناظر سره جګړې جاري وے زۀ چې د دې نه خبر شوم نوما هغوي ته وليکل چې تاسو په داسې وخت کښې د جګړو نه باز راشئ چې زۀ په کابل حمله کونکے يم. په ژمي کښې ما د فيض محمد نه د باربرداری ټټوان غوښتي وو ليکن هغه نمک حرام چې پوهه شو چې زۀ جنګ کښې انښتے يم نو د دې ټټوانو د راليږلو نه هغۀ انکار وکړو. د سيداباد د فتحې نه پس زما پلار هغۀ ته وليکل چې راشه او ما وګوره. د دې دعوت نه هم هغۀ انکار وکړو. دغه ورځو کښې زما د ترۀ زوي سردار سرور خان سره د غلام علي د اتو زرو سورو سره د هزارې د انتظام دپاره باميان ته وليږلے شو. په دغه ورځو کښې شير علي د قندهار نه غزني ته راروان وۀ او ما ئ په قلات مقابله وکړه لکه چې څنګه ئ بره ذکر شوے دے.

په دې عرصه کښې سردار فيض محمد نور هم زمونږ د تکليف باعث شو او اخر کار زما پلار سرور خان ته د هغۀ برخلاف د پيش قدمۍ کولو حکم وکړو. دا افسر سمدستي د باميان نه بلخ ته روان شو او د آب کلي په مقام چې د ايبک نه د پنځو ورځو په مزل دے مخامخ شول. په دې جګړه کښې سرور خان زک بياموندو. ليکن د باجګاه په مقام هغۀ بيا خپل سرې رايو ځاے کړل او جنګ ئ وکړو ليکن بيا ئ شکست وخوړو. سرور وتښتيدو او فيض محمد د هغۀ نه ډير سرې او افسران قيد کړل. فيض محمد نائب غلام او غلام علي سره د دوؤ دريو نورو لويو افسرانو قتل کړل. هغه بيا قطغن او بدخشان ته واپس شو او د يوې معمولي جګړې نه پس ئ دا ملکونه د مير جهاندار نه قبضه کړل. مير جهاندار زما پلار له کابل ته د دې شکايت دپاره راغے. ليکن هغۀ سره هلته څۀ فوځ نۀ وۀ او هر کله چې هغۀ دا واوريدل چې فيض په کابل باندې پيش قدمي کوي نو هغۀ ما ته سوال جواب وکړو چې هغه د نورې پيش قدمۍ نه بند کړه. د دې چيټۍ په رارسيدو سره زۀ سمدستي راروان شوم. اګر چې زۀ د ګردې د بيمارۍ د تکليف په وجه ډير کمزورے شوے وم او چونکې ما په اس سورلي نشوه کولے له دې کبله زۀ په تخت روان کښې لاړم او هره ورځ به مې د دوؤ ورځو مزل کولو زۀ په پنځمه ورځ غزني ته ورسيدم.

زۀ چې هلته ورسيدم نو ماله زما د پلار يوه چيټۍ راغله چې جلدۍ کولو ته ضرورت نشته ځکه چې نمک حرام فيض بلخ او قطغن ته واپس شوے دے. زۀ په دې خبر خوشحاله شوم ځکه چې اګر کۀ زۀ پخپله ښۀ شوے وم ولې زما سرې د ډيرو وړدو مزلونو نه پس ډير ستړي شوي وو. زۀ پنځۀ ورځې په غزني کښې پاتې شوم او بيا کابل ته روان شوم. زما پلار زما استقبال دپاره ډير سرې راواستول او هغوي سره ما دوستانه دارومدار وکړو. زۀ د خپل پلار په لاسونو ښکلولو ډير خوشحاله شوم او د مور سلام مې هم ډير په ادب سره وکړو. ما خپل فوځ د دريائے کابل په غاړه ديره کړو او هره ورځ به يو ځل د مور پلار کتو له تلم. او

اودهٔ کیدو لـه بـه همیشه خپل کیمپ ته واپس راتلم. دغه شان تر اوږي پورې وخت تیر شو. دغـه وخـت پـه کـابل کښې هیضه شوه او زما پلار ماته ووئیل چې تهٔ بالاحصار کښې دیره شه ځکه چې د خیمو هوا د صحت دپاره ښه نهٔ ده. ما خپل سپاهیان رخصت کړل او هغوي خپلو کورونو ته لاړل، زهٔ بیا بالاحصار ته روان شوم.

څهٔ لـږه مـوده پس زهٔ خبر شوم چې زما پلار هم په دې مرض ناجوړه شو او کوم دارو چې د دې جاهـل پنساریانو ته معلوم وو او هغهٔ له ئ ورکول هغې د دې مرض نه هیضه جوړه کـړه او هغـه ډیر سـخـت نـاروغـه شـو هـم په دغه وخت خبرونه راغلل چې شیر علي بلخ ته راورسیـدو او فیـض هـغـهٔ سره په کومک راووتو. او دواړه په کابل راروان دي. ما سمدستي خپـل تـرهٔ تـه ولیـکـل چې زما پلار په سخت خطرناک حالت کښې دے او شیر علي او فیض زمـونـږ مقابلې ته راروان دي. او اګر چې زهٔ دا غوارم چې زهٔ د هغوي برخلاف د جنګ دپاره فـارغ وے لیـکـن تـر څـو پـورې چـې تـهٔ زمـا په ځاے نهٔ ئ راغلے نو زهٔ خپل پلار یواځې نشم پـریښـودې. تـر ډیـرې مـودې پـورې ماله د دې چیټئ هیڅ جواب رانغے له دې کبله ما د شیر علي د نقل و حرکت د خبرونو د راوړو دپاره مخبران مقرر کړل. او هر کله چې هغه کابل نه د دوؤ ورځـو په مزل پاتې شو نو ما هغهٔ سره د جګړې دپاره تیاري وکړه. زهٔ یو څو ورځې د دې خبـرې پـه اوریـدو ډیـر حیـران شـوم چـې دشـمـن پنج شیر ته واپس شو. او دا نیت کوي چې ناساپې کابل کوهستان کښې داخل شي. په دې ما د خپل پلار نه رخصت واخستو. هغهٔ زما د کامیابۍ دپاره دعا وکړه. او زهٔ چریکار ته روان شوم زما ترهٔ هم غزني ته راورسیدو لیکن هلته په دې خیال دیره شو چې زهٔ به تر هغې پورې په غزني کښې یم تر څو چې جنګ ختم شوے نهٔ وي. هـر کله چې زهٔ چریکار ته ورسیدم نو زما مخبرانو خبر راوړو چې فیض محمد د پنج شیر پـه دره د راتلو اراده لري. ما چې دا واوریدل نو ټوله شپه مې مزل وکړو او نمر چې ختو نو زهٔ د ګل بهار او کله الله داد خوا ته چې د درې په خلهٔ کښې پراتهٔ دي ورسیدم. ما سره خپل فوځ راغـلـے وهٔ او فیض محمد هم دغه وخت د غرهٔ په سوکه راوختو ماته وروستو پته ولګیده چې څهٔ وخت هغه د دې نه خبر شو چې د کابل فوځ ماته مخامخ پروت دے نو هغه حیران شو ځکه چې د کوهستان مشرانو هغه خپل ملک ته د دې دپاره رابللے وهٔ چې د هغوي په علاقه کښې بـه د هـغهٔ د مقابلې دپاره هیڅوک نهٔ راوځي. لیکن دا ناساپې مصیبت اوس د هغهٔ د سترګو د وړاندې پروت وهٔ. دغه وخت د شیر علي د طرف نه هم هغهٔ له چیټئ راغله چې تر څو زهٔ نهٔ یم دررسیدلے تـر هـغې تهٔ وړاندې مهٔ ځه. او دا چې زهٔ به په دوؤ ورځو کښې دررسم. فیض په دې ډیـر خـفـه شـو او ډیـر بـدرد ئ شیر عـلـي تـه واستول او ورته ئ ووئیل چې عبدالرحمٰن رارسیدلے دے نو کهٔ زیاتي حصار شوې نو هغه به مونږ دواړه قتل کړي.

پـه هـغـه شپه هغه د غرونو په سر ځان له مورچې جوړې کړې او بل سحر له ما په هغهٔ

حمله وکړه. جگړه سخته وشوه ځکه چې فیض ته دا فائده وه چې هغه زمونږ د سر د پاسه وه لیکن یو څو گینټې پس ما د هغه په ځنې سنگرونو باندې قبضه وکړه. هغه د دې نه خبر شو نو د غونډو په شا باندې په مونږ راتاؤ شو لیکن ما هغه د توپې په یوه گولۍ باندې نیغ وویشتو او هغه په گیډه ولگیدو. دغه شان کوم نمک چې هغه زمونږ خوړلے وه د هغه نه رابرسیره شو او د دې نمک حرام د ژوند خاتمه وشوه. او د هغه انجام هغه ته د خصلت مطابق پیښ شو. ما قریباً د هغه ټول فوځ قیدیان کړل. او شیر علي دوؤ زرو سورو سره چې هغه د هرات نه راوستي وو بلخ ته وتښتیدو. ما د فیض نعش د هغه مشر ورور ولي محمد او د هغه مور ته کابل ته واستولو او زه پخپله هم څلور ورځې پس کابل ته لاړم.

زما ترهٔ یو څو ورځې پس په غزني کښې زما د فتحې خبر واوریدو زه چې کابل ته ورسیدم نو سمدستي د خپل پلار په خدمت کښې حاضر شوم لیکن هغه په مرگوني حالت کښې وه د حرم بیبیانو په زوره هغه ته اواز وکړو چې عبدالرحمٰن رارسیدلے دے. او د ملاقات اجازت غواړي هغه د خبرو کولو قابل نه وه خو ما طرف ته ئې لاس وخوځولو او چې زه پوهه شوم چې دې به بیا خبرې ونکړې شي نو ما وژړل. هغه سره د څه وخت تیرولو نه پس زه خپل کیمپ طرف ته راروان شوم. او خپل فوځي فرائضو ته مې توجه وکړه. او په ورځ کښې به دوه ځله د خپل پلار د کتو دپاره تلم. زما د واپسۍ په دریمه ورځ چې د جمعې ورځ وه هغه د دې دنیا نه رخصت شو او ماله ئې د خپلې جدایۍ داغ راکړو. لیکن زه د خدائے د رضا په منلو شاکر شوم. د جنازې د مونځ کولو نه پس د هغه تابوت مونږ د هوشمند خان په قلا کښې دفن کړو چې کومه هغه خوښه کړې وه. دا د هغه خپل ملکیت وه او زه بیا په مات زړه واپس کابل ته راغلم. او غریبانو او ړندو گوډو له مې خیراتونه ورکړل.

درې ورځې پس ما خپل ترهٔ محمد عظیم ته ووئیل چې تر کومه پورې زما پلار ژوندے وه خو ته د هغه کشر ورور وې او زه ستا کشر وم اوس چې زما پلار مړ شو نو زه به تاته د هغه پشان گورم. او زه به ستا په ځاے ځان وگڼم او خپل ځاے به ستا مشري زوي ته پریږدم. زما ترهٔ په جواب کښې ووئیل چې ته اصلي وارث ئې ځکه چې د امیر مرحوم زوے ئې. او زه به ستا نوکر یم لیکن ما ورته په جواب کښې ووئیل چې ترهٔ ستا سپینه ږیره د دې مناسب نه ده چې ته د چا نوکر وگڼلے شې. زه کشر یم نو له دې کبله زه به ستا هغه شان خدمت کوم لکه چې څرنگ مې د خپل پلار کولو. مونږ په دې معامله څلور ورځې بحث وکړو اخر د جمعې په شپه ما د کابل شهزادگان او د صوبو سرداران راوبلل اوهغوي ته مې ووئیل چې د مځکښې دپاره خطبه زما د ترهٔ په نوم لولئ د دې نه پس چې خطبه ولوستې شوه نو ما د بیعت لاسونه هغه له ورکړل او نورو سردارانو زما متابعت وکړو. او مونږ هغه له مبارکي ورکړه. زه بیا خپل کیمپ ته واپس راغلم او تر څلویښتو ورځو پورې ملیانو قرآن

ولوستو او دعاګانې ئ وکړې او ډیر خیراتونه مونږ د خپل پلار په ارواح وکړل. د هغهٔ د مرګ نه یو څو میاشتې پس وران کارو خلقو زما ترهٔ زما برخلاف کړو او هغهٔ ته ئ دا لمسه وکړه چې تر کومه پورې عبدالرحمٰن خان کابل کښې دے نو ستا اثر به محدود وي له دې کبله دا به ښه وي چې عبدالرحمٰن بلخ ته واستولے شي او تهٔ خپل زوے د هغهٔ په ځاے مقرر کړه. ماله د دې بیوفاخلقو نومونه اخستل پکار دي ځکه چې هغوي سره د خپلو پلارانو د هغهٔ د اوښانو پوزې راښکلې دي او امیر د هغوي په لاس کښې یوه ګوډۍ وه. د دې سړو نومونه دا دي: سرفراز خان غلجے، صاحبزاده غلام جان ، ملک شیر ګل غلزے، نواب خان، صوفي خان کیاني، محمد اکبر خان غلزے، میراکبر خان کوهستاني، میر جان عبدالخالق چې د احمد کشمیري چې د چا وړومبے ذکرشوے دے زوے وهٔ او ملک جبار خان. دې سړو زما ترهٔ زما دومره خلاف برانګیخته کړو چې یوه ورځ زهٔ چې حسب معمول د هغهٔ سلام له لاړم نو زهٔ دربان بهر د دروازې نه ودرولم او ماته ئ ووې چې امیر صاحب اودهٔ دے زهٔ په دروازه کښې د سحر نه تر یوې بجې غرمې پورې کښیناستم حالانکې ټول نوکران اوافسران به دننه تلل راتلل. بیا هغهٔ ته روټۍ کیښودې شوه او زهٔ حیران شوم چې دا کوم قسم خوب دے چې دې ئ کوي. د دې نه پس ما ته د دننه راتللو اجازت وشو او هرکله چې زهٔ دننه لاړم نو ما د هغهٔ ټول افسران ولیدل چې د هغهٔ نه چاپیره ناست وو زهٔ هم کښیناستم او هرکله چې ماته ووئیلے شو چې روټۍ له لاړ شه نوما ورته ووې چې ما خوړلې ده. او بیا زهٔ په یو ګوټ کښې تر هغه پورې کښیناستم تر څو چې هغوي روټۍ نهٔ وه خوړلې درباریانو بیا د یو بل په غوږ کښې پټې پټې خبرې شروع کړې. له دې کبله زهٔ راپاڅیدم او راروان شوم. دا منصوبې او پټې پټې خبرې دوه یا درې ورځو پورې وشوې. او بیا ماته زما ترهٔ ووئیل چې دا به بهتره وي چې تهٔ بلخ ته لاړ شے ما هغهٔ ته دا یقین ورکړو چې ستا دپاره به دا د ټولو نه ښه خبره وي چې تهٔ خپل زوے عبدالله سره د عبدالرحیم او جنرل نظیر او دغه شان زما د فوځ نورو افسرانو سره چې د بلخ باشنده ګان دي سره د څلویښتو توپو ولیږې او ما په کابل کښې پریږدې چې د ضرورت په وخت کښې ستا د خدمت دپاره تیار یم. ما دا خیال کولو چې کهٔ شیر علي د هرات نه پیش قدمي وکړه نو زهٔ به مقابلې له ورو‌ځم. زما ترهٔ ووئیل چې د بلخ د ملک انتظام بغیر له تانه بل څوک نشي کولے. او هرکله چې زهٔ پوهه شوم چې دې ځان زما نه خلاصول غواړي نو زهٔ په لسو ورځو کښې دننه بلخ ته روان شوم. او د کور خلق مې په کابل کښې پریښودل. دغه ورځې د ژمي وے او په زمکه باندې ډیره غټه واوره پرته وه ماته په لاره ډیر غټ تکلیف وشو او زما په فوځ کښې قریباً د درې سوؤ تنو لاس پښې د یخ نه پریوتل.

ما له د دې خبرې ذکر کول پکار دي چې زما د روانیدو نه وړومبے امیر محمد اسماعیل د سردار امین زوي ته حکم کړے وهٔ چې یوه پلټن شپږو توپو او پنځو زرو د رسالې

سورو سره هزارې ته، او کرنیل سهراب ته ئ حکم کړے وۀ چې څلور سوه د رسالې سورو او څلورو توپو سره د درۀ باجګاه خلې ته د عبدالرحمٰن د استقبال دپاره لاړ شئ. دا افسران زما سلام له راغلل. او ما هغوي ته سوال وکړو چې تر بلخ پورې ما سره لاړ شئ او د هغه ملک د خلقو برخلاف په جنګ کولو کښې ما سره مدد وکړئ ځکه چې هغوي بغاوت کړے دے.

ما هغوي سره لوظ وکړو چې په مخکښې سپرلي کښې به تاسو راپریږدم هغوي زما خبره ومنله لیکن زما تره کرنیل سهراب ته یوه چیټهی راولیږله چې فوراً واپس شه. خواه عبدالرحمٰن درته اجازت درکوي او کۀ نه. یو څو ورځې پس د بامیان ګورنر چې زما د لاسه مقرر شوے وۀ ماته ولیکل چې ما له حکم راغلے دے چې سمدستي کابل ته د حساب کتاب دپاره راشه او د خپلې برطرفی احکام وصول کړه. ما هغۀ ته په جواب کښې بل څۀ لیکلے شو بغیر د دې نه چې تۀ د امیر د حکم تعمیل وکړه. هرکله چې زۀ ایبک ته د ډیر سخت سفر او ډیرو مشکلاتو نه پس راورسیدم نو د قطغن میر زما سلام له راغے او ډیرې تحفې چې په هغې کښې څلور سوه اوښان او یو زر اسونه شامل وو ماته پیش کړل. د هغه ځایه نه تاشقرغان ته روان شوم ما ولیدل چې ټول ملک د شیر علي د بدانتظامی په وجه ابتر حالت کښې پروت دے. میران بلخ ته چې ورومبے بخارا، قولاب، حصار او نورو طرفونو ته تبنتیدلي وو، شیر علي خپل ملک ته د واپسی دعوت ورکړے وۀ. او دا ملکونه ئ په هغوي باندې سره د توپو د نغد قیمت په عوض کښې خرڅ کړي وو. دې احمقانو په دې خیال چې ګنې شیر علي ته د دې ملک د خرڅولو اختیار شته دا روپی هغۀ له ورکړے وے او سمدستي ئ پښتانۀ خلق تالا کړي وو. او هغوي ته ئ دا وئیلي وو چې شیر علي تاسو په مونږ خرڅ کړي یئ. د دې په جواب کښې پښتنو هغوي ته ووئیل چې عبدالرحمٰن زمونږ بادشاه دے او مونږ شیر علي امیر نۀ منو. په دې بحث مباحثه وشوه چې د هغې انجام خونریزي وه او هرکله چې زۀ وررورسیدم نو میران د دې خبرې د نتیجې نه ویریدل او اخشي، اندخوئ، شبرغان او میمنې ته وتبنتیدل. بیا د نیملک قلائ مستحکم کړه او د ملاتړ د نیولو کوشش ئ شروع کړو. چې ما سره جنګ وکړي.

زۀ د تاشقرغان نه مزار ته لاړم او د هغه ځایه نه تخت پل ته. زما د رسیدو نه یو څو ورځې پس د اسماعیل د توپخانې او پیاده فوځ افسرانو ماته رپورټ وکړو چې اسماعیل ستا څۀ ډیر خیر خواه نۀ ښکاري له دې کبله مونږه به خوشحاله یو کۀ چرې تۀ مونږ په خپل فوځ کښې نوکران کړې. د دې په جواب کښې ما ورته ووې "چونکې زما ترۀ امیر عظیم تاسو د دې دپاره مقرر کړے یئ چې د اسماعیل د لاندې نوکري وکړئ نو زۀ بغیر د هغۀ د اجازت نه تاسو خپل ځان ته نشم رابدلولې." ما هغوي سره وعده وکړه چې زۀ به خپل ترۀ ته ولیکم او ما ولیکل ولې په جواب کښې زما ترۀ ووئیل چې هر چا چې زما د نور چشم محمد اسماعیل

خبره وکړه نو زۀ به هغه نمک حرام او دروغژن ګنم ما دا چیټې هغه افسرانو ته وښوده او نیملک طرف ته روان شوم. چې دشمن زما برخلاف نیولې وه. ما د دوستی په طریقه او د قرآن په قسم ډیر د تسلی ورکولو کوشش وکړو چې ما سره په جنګ کولو کښې ځان مۀ تباه کوئ لیکن چونکې د هغوي دا خیال وۀ چې دا قلا څوک نشي اخستې نو هغوي زما خبره وانۀ وریده. د دې قلا د خندق نه چې درې سوه دیرش ګزه ورډ او پنځوس ګزه پلن وۀ پورې وتل ناممکن معلومیدل. بله ورځ ما توپې په ترتیب سره ولګولې او نمرخاتۀ وخت مې د حملې کولو حکم وکړو. نهو بجو پورې ما د قلا دروازه او دوه منارې ورانې کړې. زما فوځ لس زره ګیلې د وچو وښو د دې دپاره په خندق کښې وغورځول چې د پورې وتو دپاره پل جوړ شي. دغه شان چې هغوي ته د پښو ایښودو ځاے په لاس ورغے نو هغوي فصیل ته وروررسیدل. باغیانو او د قلا وسیدونکو د بینت لویو لویو بنډلونو ته اور ورته کړو او زما د حمله آور فوځ په مخکښې ئ وغورځولو او د دې نه علاوه چې به هغوي په دیوالو ختل نو هغوي به په سنګینونو په هغوي حمله کوله سره د دې هغوي د پښو د لګولو دپاره ځاے بیامونـدو او سمدستي په وړه قلا ورننوتل. اګر چې په دې کار کښې د هغوي نه اووۀ سوه سړي او زخمیان پاتې شول هر څومره سړي چې په قلا کښې وو هغوي قتل شول. دا په شمار دوه نیم زره سړي وو. صرف یوسړے ژوندے بیاموندې شو او دا هم ځکه چې هغۀ خپل ځان په یو وچ کوهي کښې غورځولے وۀ هغۀ ماته ووې چې څۀ وخت میرانو دا واوریدل چې زۀ په بلخ پیش قدمي کوم نو هغوي خپل د ټولو نه بهادر دوه نیم زره سړي خوبش کړل چې چا پخپله رضا خپل ځانونه د قلا د حفاظت دپاره پیش کړي وو. میرانو هغوي له خلعتونه تورې ټوپکونه وغیره د دې خدماتو په صله کښې ورکړي وو.

ما د قلا کمانډر کاره خان چې د آشان صدور د میر بلخ زوے وۀ نه تپوس وکړو چې تاسو ولې هغه قرآن منظور نۀ کړو چې کوم ما په طور د قسم تاسو له راستولے وۀ هغۀ په جواب کښې ووئیل چې " تاته هم پته ده اوماته هم چې دا قلا هیچرې هم چا وړومبے نۀ ده لاندې کړے د دې دپاره زمونږ دا یقین وۀ چې دا ناقابل تسخیر ده. " ما ته دا پته وه چې واقعي دا قلا ناقابل تسخیر ده ځکه چې زما ترۀ اتلس میاشتې محاصره د هغې یو ځل کړې وه لیکن بیا هغه د هغې د محافظینو سره په صلح کولو مجبور شوے وۀ. ځکه چې هغۀ سره خرڅ خوراک ختم شوے وۀ د خداے پاک په فضل سره ما دا قلا په شپږ ګینټې کښې واخسته. او د هغې ټولو ظلمونو بدل مې واخستو کوم چې هغوي پښتنو سره په دې ملک کښې کړي وو. په بله ورځ ما دا سړے رها کړو او میرانو له مې سره د قلا د تسخیر د واقعاتو واستولو. د دې نه پس ما په اخشي پیشقدمي وکړه د هغه ځاے خلق زما پیشوایۍ له راووتل او ماته ئ سلام وکړو او د میرانو د رویې متعلق ئ مانه معافي وغوښته. ما هغوي معاف کړل ځکه چې اصلي قصور د

شیر علي خان وځ چې چا په هغوي ملک خرڅ کړے وځ. میران ټول میمنې ته وتښتیدل ماسوائ د میر حاکم نه چې هغځ زما اطاعت قبول کړو. او سوائ د محمد خان د سر پل د میر نه. چې هغځ ما له ډیرې تحفې راواستولې. د دې سړي ذکر ما وړومبے هم کړے دے ځځ وخت چې ما د هغځ د بخارا د استوګنې واقعات بیان کړي وو. ما د هغځ تحفې واپس کړې او یوه چیټی مې سره د نوي ګورنره د هغځ په ملک د قبضې کولو دپاره ولیږله. د دې کبله هغه هم میمنې ته وتښتیدو.

زځ چې شبرغان ته رسیدم نو ما میر حاکم خان له خپل زوړ ځاے ورکړو او اندخوئ ته مې نوے ګورنر واستولو؛ چونکې میرحاکم زما د مهرباني ډیر مشکور وځ هغځ ما له خپله لور په نکاح کښې د وادځ دپاره پیش کړه. وړومبے خو ما د هغځ پیشکش نامنظور کړو لیکن بیا مې قبول کړو. د اسماعیل سرپرستانو ما له اطلاع راکړه چې اسماعیل زمونږ د حکومت دشمن دے نو مونږ له د هغځ برخلاف احتیاط کول پکار دي. چونکې دا هم هغه شان خبره وه چې کومه ماته د هغځ افسرانو کړې وه نو ما هغوي ټولو ته ووئیل چې امیر ته دا خبره ولیکئ او خپل مهرونه پرې ولګوئ ما هم خپل ترځ ته په دې باره کښې ولیکل لیکن هغځ زمونږ چیټهو ته هیڅ توجه ورنځ کړه سیوا د دې نه چې مونږه ټول ئ وکنځلو. هغځ ما ته حکم راواستولو چې سمدستي میمنې ته روان شه لیکن چونکې دا خلاف مصلحت خبره وه ما هغځ سره حجت وکړو او ورته مې ولیکل چې چونکې زما فوځ ټول ژمے مزل کړے دے او ډیرې سختې ئ رابنکلي دي او بیا د هغې نه پس ئ جنګ کړے دے او فتح ئ حاصله کړې ده له دې کبله د هغوي دا حق دے چې هغوي بنځ ارام وکړي. ما دا هم ورته ولیکل چې چونکې په ملک کښې هم هغه شان اړے ګړے دے نو دا لازمي ده چې زځ هم دلته پاتې شم. تر څو پورې چې دا خلق زمونږ حکومت سره عادت شوي نځ وي. د دې په جواب کښې هغځ ولیکل چې زما دا یقین دے چې شیر علي به خپل فوځ زما د زامنو د سرور او عزیز برخلاف قندهار ته رالیږي او کځ چرې هغځ دا شان وکړل او زما زامنو شکست وخوړو نو دا به هم ستا ګناه وي. ما په جواب کښې ورته ولیکل چې تځ میمنې ته نور امدادي فوځونه واستوه او ما پریږده چې زځ ستا په خوا کښې یم کځ چرې شیر علي په قندهار باندې حمله وکړي. ما دا هم ورته ووئیل چې د میمنې په محاصره کښې به لازمي طور میاشتې لګي. او شیر علي چې ما د دومره لرې مقام په محاصره کښې مصروف ویني نو هغه به په کابل حمله وکړي زما ترځ زما په دې یوه خبره هم توجه ونځ کړه چې کځ تځ زما دوست ئ نو میمنې ته به لاړ شے او کځ نځ ئ نو بیا چې څنګه چې ستا خوښه وي هغه شان کوه. زځ په دې ډیر مایوس شوم او په زړځ کښې مې راغلل چې دا شان ورته ولیکم "کځ چرې زځ د شیر علي خان د دشمنی نه نځ ویریږم نو ستا د دشمنی نه هم نځ ویریږم." مګر چې بیا مې فکر وکړو نو دا شان مې ونځ لیکل او دا رنګ خیال مې وکړو چې

دې هم ما په تخت کښېنولے دے له-دې کبله ماله پکار دي چې په هره يوه خبره کښې زۀ د هغۀ ملګرتيا وکړم له دې کبله ما چارچاپيره ګورنران مقرر کړل او پخپله د اندخوئ په لار ميمنې ته روان شوم دې سره سمه ما يوه چيټهي امير ته وليږله او هغه مې د خپلو روانيدو نه خبر کړو. ليکن دا مې هم ورته وليکل چې زما دا يقين دے چې تاته به يوه ورځ په دې خبره ارمان درشي.

زۀ د ميمنې نه چې د يوې ورځې په مزل پاتې شوم نو هغۀ ماته وليکل چې د شير علي زامن په قندهار باندې د پيش قدمۍ دپاره راروان دي او په فراه باندې ئې قبضه کړې ده هغۀ ماته ليکلي وو چې خپل نيم فوځونه سمدستي کابل ته راواستوه او په باقي نيم باندې د ميمنې محاصره جاري وساته. هغۀ ماته دا هم وليکل چې دې فوځ سره زما نور چشم اسماعيل راواستوه. د دې احکامو په جواب کښې ما هغۀ ته وليکل چې ما خو تۀ وړومبے د دې امکاناتو متعلق خبردار کړے وے ليکن چونکې تا زما خبرې ته غوږ نۀ کښېښودو نو اوس زما دپاره دا ناممکنه ده چې په نيم فوځ باندې زۀ د ميمنې محاصره وکړم نۀ زۀ پخپله درتلې شم او نۀ درته امداد درکولے شوم.

د دې نه پس زۀ پخپله لاره روان شوم او د قلا نه مې بهر د مورچو جوړولو حکم وکړو ما خپله خيمه په ټل عاشقان نومے يوه غونډۍ باندې ولګوله چې د قلا نه پنځلس سوه قدمه لرې او په يو وچت ځاے پرته وه. هرکله چې ما د محاصرې کارروائي شروع کړه نو ماله يو بل خط د ترۀ د طرف نه راغے چې زما زوي محمد عزيز له محمد يعقوب شکست ورکړو او هغه د يعقوب په لاس کښې قيدي دے. يعقوب د پشت رود په صوبه قبضه وکړه. دې دپاره ماله سمدستي نيم فوځ راواستوه ليکن ما بيا هغۀ ته انکار وکړو. او ورته مې ووئيل چې زۀ دشمن ته مخامخ پروت يم او د قلا په محاصره کښې مصروف يم. نو ماسره دومره فوځ نشته چې په هغې کښې نيم تاله درولېږم.

ما په قلا په زور و شور حمله وکړه ليکن وا مو نۀ خستې شوه. ځکه چې محمد اسماعيل دشمن ته د هغې ګړۍ خبر ورکړے وۀ چې کومې باندې زمونږ د حملې کولو نيت وۀ چونکې هغوي زما د حملې له زور نه دا اندازه ولګوله چې مونږ به د عبدالرحمٰن د دويمې حملې مقابله ونۀ کړې شو د دې دپاره د ميمنې مير خپل زوي سره د ځنې مشرانو او مليانو په قرآن باندې قسم سره راوليږلو او د څلويښت زرو پونډو سالانه خراج د ورکولو اقرار ئې وکړو. هغۀ د اسونو او نوروشيرونو تحفې هم راوليږلې ما د هغۀ شرطونه په دې وجه منظور کړل چې په کابل کښې شور وشر وۀ. بيا مير پخپله ماله سلام له راغے ما په قلا باندې سره د شپږو توپو چې په هغې کښې وے قبضه وکړه. مير حسين خان د نورو ميرانو د طرف نه سفارش وکړو او ما هغوي هم معاف کړل.

زما ترهٔ اسماعیل ته ولیکل چې ما تا له پنځهٔ چیټې دراستولې دي چې تهٔ واپس شه لیکن تا د هغې هیڅ پروا ونهٔ کړه. ما اسماعیل له دا خط ورکړو او ورته مې ووئیل چې ما تاله وړومبي خطونه په دې وجه نهٔ وو درکړي چې ما ته ستا ذ فوځ ضرورت وهٔ لیکن اوس چونکې ماته ستا ضرورت پاتې نشو دې دپاره تهٔ تلے شے. په بله ورځ هغه روان شو او زهٔ هم بلخ ته روان شوم. چونکې محمد اسماعیل په زړهٔ کښې غدار وهٔ هغهٔ د قصده لوے لوے پړاونه ووهل د دې دپاره چې هغه زما نه وړومبے بلخ ته ورسیږي او ښار لوټ کړي لیکن زهٔ هم د هغهٔ په نیت شکمن شوے وم نو ما هغه د خپل ځان نه وړاندې تلو ته پرې نښودو.

زهٔ چې بلخ ته ورسیدم نو د کرنیل سهراب د طرف نه یوه چیټې ماته راغله چې ما سردار شریف خان (ستا د ترهٔ د هدایاتو مطابق) تخت پل ته راوستے دے نو تاله کتل پکار دي چې هغه پوره طور په قید کښې وي. دا شریف خان د اسماعیل ماما وهٔ او زما دا خیال وهٔ چې اسماعیل به غالباً د هغهٔ د خلاصولو کوشش وکړي چنانچه ما دوه پلټنې او یوه توپخانه هم هغه شپه تخت پل ته ولیږله او دا هدایات مې ورکړل چې شپه او ورځ لار ووهئ. او تخت پل مستحکم کړئ هغوي تولهٔ ریګستاني لار د اخشي او بلخ په علاقه کښې ووهله او د هغه ځاے نه تخت پل ته ورسیدل. اسماعیل په بله ورځ په ښار باندې د حملې او د ماما د خلاصي دپاره ځنګه چې زما شک وهٔ راورسیدو لیکن چونکې زما فوځ د هغهٔ نه وړومبے رسیدلے وهٔ هغهٔ خپله اراده بدله کړه او مزار ته واپس شو. اسماعیل چې هلته ورسیدو نو هغهٔ ګورنر نه په زور ټولې سرکاري روپۍ واخستې چې د هغې مقدار دیرش زره ټنګې وهٔ. د هغې نه پس هغه تاشقرغان ته لاړو چې د هغه ځاے خزانه لوټ کړي لیکن چونکې خلق د هغهٔ په نیت د وړومبے نه پوهه شوي وو لـه دې کبله هغوي خپل ځان مورچه کړو. او هغهٔ سره د جګړې دپاره تیار شول. هرکله چې هغه په دې خبر شو نو هغهٔ خپله لار بامیان ته بدله کړه او څهٔ چې ئې په لاره بیاموندل هغه ئې تالا کړل. زما ترهٔ د هغهٔ د دې بدې رویې نه په ناخبرۍ کښې هغهٔ ته په بامیان کښې خط ولیکلو چې څومره زر کیدے شي کابل ته راشه. ځکه چې زهٔ غزني ته د شیر علي مقابلې ته روان یم. او دا چې شیر علي قندهار فتح کړے دے. او په قلات باندې راروان دے. دې اسماعیل چې د نورچشم خطاب ئې لرلو هغهٔ ته په جواب کښې ولیکل چې زما دوه پلټنې توپخانه او سوارهٔ ما تر هغې پورې کابل ته روانیدو ته نهٔ پریږدي تر څو پورې چې ما هغوي له د دولسو میاشتو تنخواه ورکړے نهٔ وي. دې سره سم د اسماعیل تخت پل ته د تګ خبر زما د ترهٔ تر غوږو ورسیدو او هغهٔ ماته سوال جواب وکړل چې تا بالکل صحیح وئیلي وو چې اسماعیل غدار دے. ما په جواب کښې هغهٔ ته ووئیل چې ستا نورچشم به لا نور خدمتونه هم ستا دپاره کوي او په اخر کښې مې ورته ولیکل چې " د خداے دپاره کابل مهٔ پریږده یوه میاشت انتظار وکړه تر څو چې زهٔ ستا مدد له نهٔ یم دررسیدلے." ما سمدستي تر

خپلو رارسيدلو پورې هغهٔ له دوه زره توريالي ځوانان د غلام علي پوپلزي د کمان لاندې ورواستول.

په بله ورځ زهٔ تبې ونيولم او تر يويشت ورځو پورې ئې پرې نښودم. څهٔ وخت چې زهٔ جوړ شوم نو کابل ته روان شوم. زما د بيمارۍ په وخت کښې ما عبدالرحيم او جنرل نظير سره د نورو افسرانو د دې کار دپاره مقرر کړي وو چې تاسو د سفر ټول ضروري انتظامات سر ته ورسوئ او چونکې دا انتظامات اوس پوره شوي وو. زهٔ تاشقرغان ته روان شوم او د هغه ځاے نه ايبک ته لاړم. هلته زما د حرم يو غلام بد ته چې د فقيرانو په جامه کښې راغلے وهٔ ما سره مخامخ شو او خبر ئې راکړو چې امير عظيم غزني ته تلے دے او سردار اسماعيل د کوهستان يو څو مشرانو سره د کابل محاصره شروع کړې ده. چونکې په قلا کښې صرف دوه سوه سپاهيان وو او هغوي شپږ ورځې جنګ وکړو ليکن د کابل باشنده ګان اسماعيل ته واوريدل او دروازې ئې ورته پرانستې هغهٔ سمدستي زما او د امير د کور خلق د محل نه وشړل او د شير علي د امیرۍ اعلان ئې وکړو ما د دې غلام بچه نه واوريدل چې زما مور په دې ډيره خفه ده. ما له دغه وخت د سردار سرور خان يوه چيټۍ د غوري نه راغله چې په هغې کښې هغهٔ ماته ليکلي وو چې زما فوځ په غزني کښې شکست وخوړو او چونکې په تيښته کښې زهٔ د امير نه جدا شوم او هغه زما نه ورک شو دې دپاره زهٔ هيڅ خبر نهٔ شوم چې هغه کوم خوا ته لاړو په دې خبره زهٔ ډير دلګير شوم. او ما نظير حيدر د بلخ ګورنر ته وليکل چې زما د ترهٔ لاش پسې سړي وليږه هغوي هغه په بلخاب کښې بيامونده چې د هزارو د ملک په لاره هغه ځاے ته رسيدلے وهٔ. ما د بلخ ګورنر ته وليکل چې هغهٔ له يو لک ټنګې د سورلۍ اسونه او نور هر څيز چې د هغهٔ پکار وي ورليږه ما خپله کابل ته د تلو اراده پريښوده او غوري ته روان شوم. دې سره سم ما جنرل نظير ته هدايات واستول چې په باجګاه باندې د پيشقدمۍ کولو تجويز پريږده.

هر کله چې مونږ غوري ته ورسيدو نو د مير جهاندار شاه چې ما سره وهٔ د خپلې وريرې ما سره د وادهٔ کولو تجويز پيش کړو ما دا تجويز نامنظور کړو او ورته مې ووې چې کومه رشته زما ترهٔ ستاسو خاندان سره جوړه کړې ده هغه زما دپاره کافي ده. ليکن چونکې هغهٔ اصرار وکړو په دې وجه ما هغه قبوله کړه. مير محمد شاه (چې فيض محمد هغهٔ له د مير جهاندار شاه ملک ورکړے وهٔ) ماته تحفې راوليږلې ليکن ما هغه واپس کړې او هغهٔ ته مې ووئيل چې يا خو مير جهاندار شاه له خپل ملک واپس ورکړه او يا چې په کوم لوري ستا خوښه وي تهٔ لاړ شه. مير جهاندار شاه له ما پخپله دوه سوه سوارهٔ د شاه دين خان د کمان لاندې د خپل ملک د اخستو دپاره ورکړل. زهٔ غوري کښې پاتې شوم او د قطغن معاملې مې درستې کړې . د هغه ځاے نه ما خپل ترهٔ ته وليکل چې تهٔ راشه او ماسره يو ځاے شه د دې په

جواب کښې هغهٔ ماته وليکل چې تهٔ ماله راشه. ليکن چونکې زهٔ په غوري کښې د دې غرض دپاره پاتې وم چې د هندوکش او کابل لارې زما په قبضه کښې وي د دې دپاره زهٔ لاړ نهٔ شوم. چونکې زما د ترهٔ زما په جواب تسلي وشوه دې دپاره هغه ماله راغے. هغه بيا د کابل د اخستو په فکر کښې پروت وهٔ او ماته ئې په ډير زور ووئيل چې تهٔ د شير علي مقابلې ته وځه. ما هغه پوهه کړو چې مونږ له تر مخکښې سپرلي پورې انتظار کول ډير ضروري دي ځکه چې د واؤرو په موسم کښې مونږ هيڅ نشو کولے مګر حسب معمول هغهٔ زما په خبره غوږ کښينښود او ماته ئې ووئيل چې کهٔ سمدستي نهٔ ځې نو زهٔ به بخارا ته لاړ شم. ما هغهٔ سره لوظ وکړو چې په شپږ مياشتې کښې به زهٔ د جنګ دپاره تيار شم او انتهائي کوشش مې وکړو چې هغه ما سره په دې خبره متفق شي. ليکن يوه خبره هم کارګر نهٔ شوه. زهٔ مجبور شوم چې هغهٔ سره د بتخاک او شبلکتو په لاره باميان طرف ته روان شم. د باميان نه مونږ ګردن دوال ته راورسيدو چې په هغه ځاے کښې درې زره هراتي سوارهٔ د شير علي د لاسه ديره وو زما په راتلو هغوي سرچشمه ته وتښتيدل. او زما فوځ ماته ووئيل چې دوئ پسې تعاقب وکړه. د دې دپاره چې شير علي زرهٔ بائلي ما د دې تجويز سره اتفاق وکړو. ليکن زما ترهٔ انکار وکړو او اصرار ئې وکړو چې د نور او درهٔ سوخته په لارو غزني ته تګ پکار دے چونکې موسم ډير سخت وهٔ نو د ډيرو مشکلاتو نه پس مونږ غزني ته ورسيدو. نادر وردګ قلا مستحکم کړه او مونږ په روضه کښې خيمه زن شو. زما ترهٔ د دې نه وړومبے خپل زوي سرور، سرفراز غلزي له تاذان طرف ته استولے وهٔ د هغهٔ د اندړ قوم په وفادارۍ ډيره عقيده وه او چې مونږه د هغوي د ملک نه د يوې ورځې په مزل پاتې شو نو هغهٔ هغوي ته د امداد دپاره وليکل يو څو ورځې پس هغوي زمونږ کيمپ ته راغلل ليکن نهٔ خو هغوي مونږ سره د امداد وعده وکړه او نهٔ ئې زمونږ خلعتونه منظور کړل دغه شان زما ترهٔ بيا دوکه وخوړه.

شير علي چې خبر شو چې مونږ په غزني کښې يُو نو زمونږ برخلاف جګړې ته راووتو دې کښې زمونږ ډير زيات نقصان وهٔ ځکه چې کهٔ چرې مونږ په هغهٔ باندې په کابل کښې حمله کړې وے نو مونږ ته به د کاميابۍ زيات اميد وهٔ. هرکله چې شير علي ششګاؤ ته راورسيدو نو واؤره يو يو ګز پريوتې وه او هغهٔ سره خرڅ خوراک هم نهٔ وهٔ نمر هم نهٔ وهٔ د دې په مقابله کښې مونږه ښهٔ په ميدان کښې پيتاؤ ته ديره شو چې هلته واؤره هم نهٔ وه او د خرڅ خوراک سامان هم ډير وهٔ.

يوه ورځ مونږ حسب معمول خپل اوښان د خرڅ خوراک د سامان دپاره د دوؤ پلټنو او شپږو توپو په حفاظت کښې وليږل. د دې دستې مقابله د شير علي لس زرو سورو سره وشوه. دغه وخت ما اتفاقاً په خپل دوربين کښې وکتل او چې د دشمن ډير لوے تعداد مې په راتلو وليدو نو دوه زره سوارهٔ مې د هغوي امداد له واستول. دا سړي فوراً تيار شول او موقعې

ته ورسيدل او په ويستلو تورو ئ د دشمن په عقب حمله وکړه زمونږ سوارهٔ د دې امداد په رسيدو سره ډاډه شو او پخپلو توپو ئ ډير لوے قتل وکړو. تر دې حده پورې چې هغوي د دشمن نه ټول راتاؤ شول او بله دا چې دشمن ناپوهه غير منظم ملاتړ وۀ او پوره تربيت يافته نۀ وو. لـه دې کبـلـه د هغوي نه ډير خلق مړۀ شول. او په تيښته کښې د يو بل د پاسه پريوتل. په دې طريقه يو زر اسونه څلور توپې او ډير قيديان زمونږ لاس ته راغلل.

هم په دغه شپه شير علي لس زره سوارهٔ د فتح محمد د کمان لاندې زما د باربرداری په ښاروو چې په نامي او شنديب کښې وو د حملې دپاره مقرر کړل. زۀ چې د دې نه خبر شوم نـو مـا مـخـبـران خـوارهٔ کـړل چـې ماله د دې سرو د شپې د جائے قيام خبر راوړي. ما دوه زره سـوارهٔ شپږ د قـچـربـاترۍ توپې سره د دوؤ پلټنو د پياده ؤ او پنځۀ سوه بې قاعدې مليشيا د عبدالرحيم او جنرل نظير د کمان لاندې په هغوي باندې د ناساپي حملې د کولو دپاره مقرر کړل. دوئ ټوله شپه مزل وکړو او د سحر په خيره ئ په دشمن حمله وکړه او وې ښتول. دا جـګـړه دومره کامیابه شوه چې هراتي سوارهٔ هرات ته وتښتيدل او قندهاري سوارهٔ قندهار ته. او درې زره زخميان مړۀ او قيديان ترې پاتې شول.

د دې فتحې نه پس ما د شير علي د فوځ افسرانو ته خطونه وليکل چې تاسو خو ټول زما ډير خوښ يئ نـو تاسو زما برخلاف ولې جنګ کوئ هغوي په جواب کښې ووئيل چې مونږه ستا د ترهٔ د ظلمونو نه ډير تنګ يُو او د هغۀ نه نفرت کوؤ له دې کبله شير علي سره يو ځاے شـوي يـو او په اخر کښې ئ دا هم وليکل چې کۀ ستا ترهٔ تا سره نۀ وي نو مونږ به ټول ستـا اطاعت قبول کړو. ما دا چيټې خپل ترهٔ ته وښوده او ورته مې ووې چې تر کومه پورې زۀ پـه کـابـل کښـې وم نـو دا خـلق ټول خوشحاله وو او اوس دا ستا د بدسلوکۍ وجه ده چې دا ټول خلق ئ زمونږ برخلاف پاڅول د دې هغۀ سره هيڅ جواب نۀ وه.

چونکې شير علي ته د خرڅ خوراک د طرف نه تکليف وۀ هغۀ خپل کيمپ زناخان ته چې شنګاؤ ته نزدې يو مقام وۀ بدل کړو ځکه چې هلته شپږ يا اووۀ قلا ګانې وے په دې رنګ هغۀ لـه خوراک په لاس ورغے. دغه وخت زما د ترهٔ په زړۀ کښې راغلل چې دا به بهتره وي چې مـونـږ پـه زناخان حمله وکړو اوکۀ چرې مونږ په هغۀ قبضه وکړه نو شير علي به بيا خرڅ خوراک نشي پيدا کـولے مـا هـغـه ډير پوهه کړو چې په داسې سخت موسم کښې د خپلو مـورچـو نه وتل سخته کم عقلي ده ځکه چې واؤره په زمکه باندې تر نامۀ پورې ژوره پرته ده. مـا ورتـه دا هـم ووئيل چې نورې مورچې جوړول به هم ناممکن وي او زمونږ د سورو دپاره به هـم د شپـې پـه واؤرو کښـې ودريل مشکل وي زما ترهٔ حسب معمول په خپل ضد ولاړ وۀ او وې وئيل چې ستا تجويز زما نه ښۀ نۀ دے. چنانچه هغۀ اصرار وکړو چې د زناخان په قلا باندې حمله کول او قبضه کول ضروري دي. دا قلاګانې زما د کيمپ په نسبت شير علي ته زياتې

نـزدې وے. او کـۀ چرې په يو ځو ګينټو کښې ما هغه اخستې شوے خو ښه به وه. ليکن زما دا اغلب ګمان وۀ چې شير علي به د دې موقعې نه فائده وچته کړي او نمرخاتۀ به ټول فوځ په ما راواچوي او کـۀ د هغې نه وړومبے وړومبے مونږ دا قلاګانې اخستې نۀ وے نو مونږ ته به د هغۀ برخلاف د کاميابۍ ډير لږ اميد پاتې شي. د دې نه علاوه دا ضروري وه چې فوځونو دې ټوله ورځ مـزل کـړے وے او بيـا د شپې دې پـه سـختـو واؤرو کښـې سفر کړے وے او بيا دا هم ضـروري وه چـې مـا خپل نيم فوځ خپل ترۀ سره پريښې وے ولې بيا زما نيم فوځ د شير علي د مقابلې دپاره کافي کيدے نشو. ما دا ټولې خبرې هغۀ ته په تفصيل سره بيان کړې ليکن د هغۀ زمـا پـه خبـرو تسلي ونشوه او چونکې هغۀ اصرار کولو نو زۀ په روانيدو مجبور شوم. چنانچه نمرپريواتۀ زۀ روان شوم.

هـر کـلـه چـې زۀ قلا ته ورسيدم نو زۀ ورته مخامخ پريوتم او چونکې د مليشې سورو هغه په رضا نۀ پريښوده ما جنرل نظير سره د پنځو پلټنو ځلريشتو توپو، دوه زره پياده مليشيا او ځلـور زره د رسـالې سوارۀ چې دا قريباً زما ټول ټال فوځ وۀ چارچاپيره د غرونو سوکو ته وليـږلو چې هلته د شپې مورچې جوړې کړي او په ښو ښو ځايونو کښې توپې کيږدي او د سبا د جنـګ دپاره هر قسم انتظام سر ته ورسوي. ځکه چې ماته پته وه چې سبانے جنګ به قطعي جـنـګ وي. دغه وخت تيارۀ پريوتې وه او يخني بيحده ډيره سخته وه. په مونږه سختي بيحده ډيره زور شوه. ځکه چې ټوله شپه په واؤرو کښې ناست وو.

سـحـر راوختـو ليکن قلا لا هم هغه شان ناقابل تسخير وه. ما سمدستي يو قاصد خپل تـرۀ لـه وليـږلـو چـې يو زر د رسالې سورو، پنځۀ سوه د قطغن سورو سره راشه او سلطان مراد دريو پلټنو او د اسونو توپخانې سره راواستوه. ما هغۀ ته خبره وښودله چې شير علي به په مونږ حـمـلـه کوي او نتيجه به ئې دواړه طرف ته قطعي وي. زما ترۀ زما د پيغام په جواب کښې ماته وليـکـل چـې يـخـنـي ډيـره سـخته ده او څۀ وخت چې لږ شان تودوښه شوه نو زۀ به سمدستي درروان شـم اګـر چـې زمـا قـاصـد هغۀ ته ووئيل چې زناخان ته په رارسيدو کښې درې ګينټې لګي. نو پکار دي چې سمدستي روان شے ځکه چې جنګ به نمرخاتۀ نښلي.

د سـختـې يخنۍ په وجه جنرل نظير ډير زيات شراب وڅښل او قبل د دې نه چې توپې د غـرونـو پـه سـوکو ايښودې شوې وے يا مورچې کنستې شوې وے هغه اودۀ شو. نمرخاتۀ يو سـور پـه پـويـه مـاله راغـے او خبر ئې راوړو چې شير علي سره د ټوله فوځه راورسيدو. ما سره صرف ځلويښت سوارۀ وو او دې سرو سره زۀ دې غونډۍ ته په پويه لاړم مګر وۀ مې ليدل چې ټـولې توپې په دره کښې پرتې دي او نۀ ورسره توپچيان شته او نۀ ميخزين او نۀ نور سامان. زۀ پـه غـونـډۍ وروختم او وۀ مې ليدل چې د شير علي فوځ په خوا کښې پروت دے او په جنګي نـظـام کښـې تيـار دے. ليکن جنرل نظير په نشه کښې اودۀ پروت دے. ما هغه راويښ کړو او

ورته مې ووئيل چې دا ولې؟ تا دا شان کار کړے دے؟ ته به د دې خپل کار ذمه وار ئ توپچيان کوم ځاے دي سپاهيان چرته دي د باربرداری ځاروي چرته دي؟ هغهٔ جواب راکړو چې يخنې دومره ډيره وه چې ما هغوي ته په کيمپ کښې د اودهٔ کيدو اجازت ورکړو او اوس به فوراً هغوي راورسيږي . ما ورته ووئيل چې تاته به اوس پته ولګي چې څهٔ کيږي. هغهٔ په جواب کښې ووئيل چې زهٔ به د شير علي خان وښکي وشلوم. سره زما د خفګان او مايوسی نه زهٔ بې خندا پاتې نهٔ شوم . څهٔ وخت چې ما هغه په نشه کښې مخمور وليدو. چونکې مونږ سره د جنګ دپاره بالکل فوځ پاتې نشو او کوم لږ کسان چې ما سره وو هغوي هم هر طرف ته وتښتيدل نو دشمن زمونږ په توپو باندې قبضه کول شروع کړل. چونکې زهٔ هم د تښتيدو په فکر کښې شوم او دشمن زما نه چارچاپيره تاؤ شوے وهٔ له دې کبله زهٔ هم څنې دا شان سورو سره شامل شوم چې هغوي د يو بل ټولي په تعاقب پسې روان وو او چغې مې جوړې کړې چې نيسي ئ. په دې رنګ ما دوه ميله مزل وکړو او څهٔ وخت چې زما وس وشو نو ما خپلې جامې بدلې کړې او خپلو سورو سره يو ځاے شوم چې زما په تلاش کښې مصروف وودې سړو سره ما د ميمنې رخ وکړواو هلته خپل ترهٔ سره يو ځاے شوم او بيا مې هغهٔ ته د ټولو واقعاتو تشريح وکړه او ورته مې ووئيل چې کهٔ تا زما په خبره غوږ ايښے وے نو اوس به زما دا حال نهٔ وهٔ. بيا ما د هغهٔ نه تپوس وکړو چې هغه شل باره مهران چې ما تاسره پريښې وو څهٔ شول هغهٔ په جواب کښې ووئيل چې ماته هيڅ پته نشته ځکه چې زهٔ اودهٔ شوے وم او خزانچي بارونه ليږدولي وو. ما ورته ووئيل چې ما روپۍ تا سره پريښې وه نه چې خزانچي سره او اوس چې مونږ شکست وخوړو نو مونږ سره يوه پيسه نشته چونکې د بلخ لاره د واؤرې په سبب بنده وه مونږ هلته واپس نشو تلے د دې دپاره مونږ ناکام د وزيرو غرونو ته روان شو. مونږ لا دا فيصله نهٔ وه کړې چې د دشمن دوه يا درې سوه سوارهٔ راښکاره شول زما ښي طرف ته يو کنګل شوے نهر وهٔ زهٔ د هغهٔ نه سره د څلورو سورو پورې وتم او زمونږ باقي ملګرو پسې هغوي تعاقب وکړو او د درياب په بله غاړه زما د سترګو د وړاندې د دشمن رسالې هغوي ګرفتار کړل. زهٔ په دې ډير دلګير شوم چې دا هر څهٔ ما په خپلو سترګو ليدل او امداد مې ئ نشو کولے. بيا ناوخته د ورځې زما ترهٔ سره د عبدالرحيم او د درې سوؤ سورو ما سره شامل شول. د شپې قريب مونږ د زرمت قلا ته ستړي ستومانه او شکسته دل ورسيدو.

په دې کلي کښې د دوؤ ګينټو د ارام نه پس مونږ بيا روان شو. اتهٔ بجې سحر مونږ سر روحنه ته راورسيدو د دې کلي خلق په دې خيال چې مونږ د شير علي د فوځ سړي يو په يوه لويه ډله کښې راووتل او يوه ګولۍ ئ په مونږ خلاصه کړه ولې بيا هغوي مونږ وپيژندو او معافي ئ وغوښته. بيا د هغوي ملکانو او مليانو مونږ له ډوډۍ او اسونو له واښهٔ راوړل. يو ملا ماله د تانبې يو ګلاس په طور د تحفې راکړو او بل سړې ما له يو جګ راکړو ما يو چيلم او څهٔ

تماکو په بیعه واخستل او چونکې دوه ورځې مې تماکو نهٔ وو څښلي نو ډېر یو مزیدار چیلم مې وڅښلو. دغه وخت په ټوله دنیا کښې زما ملکیت یو د تانبې ګلاس، یو جګ، یو چیلم او یوه قالینچه د اغوستو دپاره یا د ناستې دپاره، یوه جوړه د جامو چې کومه ما اغوستې وه یوه توره یو د ټوپک ګرډنی یوه تماچه او یو د سورلۍ اس وو. له دې نه یو څو ورځې وړومبے زما په خزانه کښې اتهٔ لکه د بخارا ټهلې، شل زره انګریزي پونډه، شل زره تولې سرهٔ زر، یوولس لکه روپۍ کابلۍ، پنځهٔ لکه د قندوز روپۍ (چې هره یوه د هندوستانۍ روپۍ هومره ده) لس زره خلعته، د دژٔ زرو سړو دپاره د پخلي لوښي (روزانه به دومره سړي زما په دسترخوان ناست وو) یو زر اوښان وو. درحقیقت زما سره دومره دولت وو چې په افغانستان کښې بل چا سره نهٔ وهٔ. زما لوے افسوس دا وهٔ چې زهٔ د هغې مخلص او مهربان افسرانو نه جدا شوم چا چې په ډېره مینه زهٔ لوے کړے وم لیکن د هغوي د قسمت نه زهٔ بالکل بې خبره وم. هم په دغه ورځ ماسپښین زهٔ سر روغ نه روان شوم او د خروټو قبیلې امیر محمد نومے یو سړے مې په طور د رهبر ځان سره کړو. مونږه اتهٔ بجې ماښام بیرمل ته ورسیدو هلته مونږ د اسونو نه کوز شو او یو ځاے نه مو واؤره لرې کړه او ځهٔ لرګو ته مو اور ورته کړو چې تودهٔ شو. د بیرمل د قلا خلق مونږ سره د خبرو اترو دپاره راغلل او ما سره ئ جګړه واچوله. زما سوارهٔ او ترهٔ مې مخکښې روان شول او زهٔ ئ وروستو پریښودم. لږ ساعت پس ماله موقع په لاس راغله او یو اس چې د بیرمل د سړي وهٔ د هغې په رکاب مې یوه پښه کیښوده او ورټوپ مې کړو. دغه سړي زما د راغورځولو کوشش وکړو لیکن ما توره راوویسته او هغهٔ زهٔ پریښودم. زهٔ په دژٔ دؤ لاړم او زما ترهٔ چې زهٔ ولیدم نو حیران پاتې شو ما د هغهٔ نه تپوس وکړو چې تاسو ولې زما نه راوتښتیدئ او زهٔ مو یواځې پریښودم خو د هغوي نه هیڅ جواب جوړ نهٔ شو. چونکې مونږ هیچا ته هم لار معلومه نهٔ وه مونږ نهٔ پوهیدو چې کوم خوا ته لاړ شو نو مونږ په خپلو کښې جرګه وکړه. ما تجویز پیش کړو چې تر سبا پورې مونږ له قیام پکار دے او د ورځې به بیا لار وینو. هغوي دې تجویز سره اتفاق وکړو. مونږ د یو غر په سوکه سملاستو چې مونږه اور بل کړو نو ترهٔ مې ووئیل چې مونږ به خلق ویني راپسې به شي نو ښه به دا وي چې مونږ یخني وزغمو. ما ورته ووې چې زهٔ دومره په زړهٔ کمزورے نهٔ یم چې د دې نه ویریږم ځکه چې زمونږ د سړو به لاس پښې پړیوځې کهٔ چرې مونږ لاس پښې تودهٔ نهٔ کړو. لږ ساعت پس قریباً شلویښت تنه سړې د خروټې قبیلې راغلهٔ او وې وئیل چې مونږ ستاسو په تلاش کښې وو او صرف د دې اور په رڼا باندې مونږ تاسو بیاموندئ. هغوي مونږ ته خپل کورونه خوشې کړل اومونږ له او زمونږ اسونو له ئ خوراکه راوړه. او هر قسم خاطر تواضع ئ زمونږ وکړه. چې زهٔ په هغې د هغوي مشکور یم. سحر مونږ د هغوي نه رخصت شو او مونږ له ئ یو رهبر راکړو. نمر پریواتهٔ مونږه ناساپي د پیر کوټے قبیلې قلا ته ورسیدو هغوي مونږ ته د دروازې

بندولو کوشش وکړو ولې زۀ بې ويرې نيغ وردننه شوم او زما سرې جخت ما پسې راغلل. هغوي مجبور شو چې مونږ ته په خير راغلے ووائي. او مونږ ته ئ سوال وکړو چې مونږ سره ميلمانۀ شئ ولې مونږه انکار وکړو. او د تشو چايو څښلو نه پس مونږه بيا روان شو. ليکن رهبر راسره نۀ وۀ او چونکې په هر لورې ډيرې لارې او درې وے مونږه بيا حيران پاتې شو چې سمه لار کومه يوه ده. زۀ مخکښې روان شوم او سرو ته مې ووئ چې ما پسې راځئ. څلور ميله تلي وو چې مونږ له يو سور مخې له راغے او هغۀ زمونږ نه تپوس وکړو چې تاسو څوک يئ. چې په دې پوهه شو چې زۀ عبدالرحمٰن يم نو هغه په پويه ماله راغے او زما پښې ئ ښکل کړې او ماته ئ ووې چې زۀ ستا د پلار زوړ نوکر يم. او د دوست محمد خان هم نوکر وم. او ماته ئ زما د هلکوالي ډيرې خبرې رايادې کړې. چونکې د هغۀ کار د رهبرى وۀ او هغۀ مونږ ته خپل خدمات پيش کړل نو ما هم په هغۀ اعتبار وکړو هغۀ ما ته ووئيل چې د وزيرو ملک په لويه لار د دوؤ ورځو په مزل دے ليکن زۀ تاسو ته يوه بله نزدې لاره ښودلے شم چې په يو وچت غرۀ تلې ده او په هغه لار به مونږ نن مازيګر له وروړسيږو. چونکې زما د ترۀ په زړۀ کښې دا ويره وه چې هسې نه چې دا رهبر مونږ سره فريب کوي له دې کبله هغۀ په وړدې لارې باندې د تلو تجويز خوښ کړو. ليکن چونکې زما دا يقين وۀ چې هغه دا رښتيا وائي نو مونږه د غرۀ په لاره روان شو. چې مونږه د يو وچت غر په سوکه ورروختو نو مونږ حيران شو چې يو فوځ مونږ پسې راروان شو. زما ټول سوارۀ خوارۀ وارۀ شو ماسوائ د څلويښتو بهادرانو سرو نه چې ما سره پاتې شول. ( د دې سرو نومونه دا دي : عبدالرحيم خان، پروانه خان (چې اوس نائب سالار اعظم دے) عبد الله خان چې اوس د بدخشان او قطغن وائسراے دے. جان محمد خان چې زما خزانچي دے. فراموز خان چې د هرات سالار اعظم دے، سيد محمد چې زما د باډي ګارډ کرنيل دے، محمد شير خان چې د رسالې کرنيل دے، احمد خان رسالدار دې په سمرقند کښې وفات شو، محمد الله رسالدار حيدر خان دې ما په قندهار کښې سالار اعظم کړے وۀ ليکن د کاکړو ملک ته په تبنتيدو مجبور شو چې هغه ډير ظالم وۀ کمانډنټ نبي الله خان، کرنيل مراسرايلي چې اوس په کابل کښې دے. کرنيل محراب خان د جنرل نظير ورور او مير عالم خان چې اوس په بلخ کښې د توپخانې جرنيل دے.)

دا سرې او يو څو نور سوارۀ ورمخکښې شول او د دشمن مقابله ئ وکړه ليکن هره وجه چې وه خو هغه ټول سرې هم دغه شان ناساپي خوراۀ وارۀ شول لکه چې څنګه ښکاره شوي وو ماسوائ د لسو تنو نه چې هغوي هم زمونږ په ډزو وتښتيدل. دا خطره چې تيره شوه نومونږ بيا روان شو او يو ميل مخکښې مو ترۀ او زمونږه نور سوراۀ رالاندې کړل. په يو بل غر چې وختو نو هم د دې قبيلې دوؤ سوؤ سورو مونږ رامنع کړو چونکې مونږ درې سوه تنه وو نو زۀ د اس نه کوز شوم او د جنګ تيارے مې وکړو ليکن د جنګ نه مې وړومبے هغوي ته د دې

خبرې د وينا کوشش وکړو چې دا به تاسو دپاره سودمنه نۀ وي چې مونږ سره بې وجې جګړه کوئ ولې هغوي ووئيل چې تا زمونږ نه پنځۀ سرې ژوبل کړي دي نو مونږ به د هغې بدل له تا نه اخلو. ما خپل سړي په دريو حصو کښې تقسيم کړل. يوه مې د هغوي ښي طرف ته، بله ګس طرف ته په يو وچت ځاے باندې ولېږله او په دريمه حصه مې په دشمن حمله وکړه. چونکې مونږه د هغوي نه چاپيره تاؤ شو هغوي ډير زر مات شو او مونږه بيا په خپله لار روان شو. لږ ساعت پس مونږه د وزيرو د ملک قلاګانې چې د مرغا په نوم مشهورې دي وليدلې. چونکې دا خلق زما ترۀ پيژندل له دې کبله هغۀ ملکانو ته چيټې وليکلې او زمونږ د هغه رهبر په لاس ئې واستولې. د دې خطونو په سبب يو سل سوارۀ مونږ ته هر کلي وئيلو دپاره راغلل او قريباً يو زر پياده خلقو زمونږ په اعزاز کښې قومي باجې وغږولې. هغوي زمونږ د ورځې ډوډی وکړه. او زمونږ اسونو له ئې خوراک ورکړو. مونږ په هغوي ډير وس وکړو چې د دې مهربانی په عوض کښې مونږ نه څۀ روپۍ واخلي ليکن هغوي انکار وکړو. سردار عبدالله د عبدالرحيم زوي ماله دوه سوه د سرو مهران راکړي وو او په ټوله دنيا کښې مونږ سره هم دغه مال وۀ. عبدالله دا روپۍ د خپلو کارتوسونو په پيټۍ پورې ګنډلې وے او د ټوپک د دارو په وجه تورې شوې وے. د دوؤ ورځو د ارام نه پس مونږ بيا روان شو او د دې علاقې په يوه بله حصه کښې ديره شو. دلته خلقو زمونږ نه د ضروريات زندګي قيمت وغوښتو او هر کله چې ما هغوي ته دا سکې پيش کړې نو هغوي د اخستلو نه انکار وکړو په دې خيال چې دا د تانبې سکې دي او وې وئيل چې روپۍ راکړئ. زۀ چې خبر شوم چې شير جان سره يو زر روپۍ شته نو ما د هغۀ نه د مهرانو په بدل روپۍ وغوښتې ليکن هغۀ انکار وکړو. او وې وئيل چې تا نه څوک دا مهران نۀ اخلي نو زما نه به ئې څوک واخلي. اخر کار زۀ مجبور شوم او روپۍ مې د هغۀ نه په زور واخستې او سل مهران مې د هغې په عوض کښې ورکړل. په دې روپو ما د خپلو سړو او اسونو دپاره خرڅ خوراک په بيعه واخستو. دوه ورځې پس مونږه د ملک ادم خان وزيري په قلاګانو کښې ورداخل شو. هغۀ په ډيره مينه زمونږ استقبال وکړو او هغه شپه ئې په خپله قلا کښې زمونږه ميلمستيا وکړه په بله ورځ مونږه وړاندې کلي ته ورسيدو او د هغه ځاے خلقو هم زمونږ ښۀ په مينه استقبال وکړو او مونږ له ئې يوه لويه ډوډۍ وکړه. په بله ورځ دواړه ملکان چې مونږ سره ئې د رهبرۍ کار کړے وۀ زمونږ نه رخصت شول او مونږه دوا نومے د افغانستان کلي ته چې د هندوستان د سرحد نه بهر پروت دے ورسيدو.

په دې ځاے کښې ما له يوه دلچسپه واقعه چې د دې نه لږه وړومبی شوې وه بيانول پکار دي. د شکست د ورځې نه چې واخلې نو د وزيرو په ملک کښې د داخليدو تر وړومبی ورځې پورې ما څۀ خوړلي نۀ وو او ما خپلو سورو ته ووئيل چې زۀ وږے يم نو کۀ د نرې

غوښې يوه ټکړه پيدا شي نو ښه به وي. هغوي ټولو سره صرف يوه روپې وه. او په دې هغوي څهٔ نرې غوښه، کُچ او پياز واخستل. مونږ سره د پخلي ديګچې بالکل نهٔ وو. او د هغه ځاے خلقو به صرف د خاورو کټوی استعمالولې. په هره طريقه چې وه زما سړو د اوسپنې يو کړيچے پيدا کړو او په هغې کښې مې څهٔ غوښه پخه کړه او څهٔ د لم ټکړې مې پکښې سرې کړې. ما کړيچے يو څو لرګو سره د دې دپاره ترلے وهٔ چې په اور ئې ونيسم او څهٔ وخت چې ما پخه غوښه د کړيچې نه راوويستله نو يو سپي په دې خيال چې دا چيرړه د ځناورو کولمه ده هغهٔ چرړه په خلهٔ کښې ونيوه او ټول څيز ئې په خلهٔ کښې يوړو زما سړو په سپي پسې دؤ کړو ولې غوښه توئ شوه. د دې نه هم زهٔ د خداے پاک په قدرت باندې قائل شوم چې څو ورځې وړومبے ما سره يو زر اوښان وو چې زما د پخلي لوښي به ئې وړل او اوس يو سپي زما د خوراک کړيچے سره د خوراکه وتښتولو. زهٔ د عاجزی په دې واقعه وخنديدلم او روټی مې بې غوښې وخوړه او اودهٔ شوم.

په دوا کښې سردار محمد خان (چې زما ترهٔ هغه جګي او خوست ته خپل ماما کره استولے وهٔ) سره د څلويښتو سورو او جنرل علي عسکر خان او معزالله راورسيدو. يو څو ورځې پس مونږ اختر وکړو او د دوا خلق مونږ سره په مانځهٔ کښې شامل شول. دوي له ما متهايانې او دستارونه ورکړل. او خوش آمديد مې ورته ووئيلو. اوس زما خرڅ ورځ تر ورځه زياتيدلو ځکه چې مونږ په شمار کښې شپږ سوه تنه وو او ماته د روپو سخت ضرورت وهٔ. زمونږ د شکريې اندازه ولګوی چې هر کله د عبدالرحيم يو نوکر د کابل نه پياده راورسيدو او دوه زره پونډه ئې راوړل د وفادارۍ د دې کار په مونږه ډير لوے اثر وشو. دا سړے وړومبے د عبدالرحيم خزانچي وهٔ او چونکې په پښو ئې پنې نهٔ وے نو هغهٔ خپلې پښې چې ټولې چاودې او وينې شوے وے د قالين په ټکړو ترلے وے. هغهٔ بيا د عبدالرحيم د کور د خلقو د ساتنې دپاره او زمونږ د نورو کارونو کولو دپاره کابل ته د واپس تلو اجازت وغوښتو ما هغهٔ له د واپسۍ اجازت ورکړو او يو اس مې هم ورته پيش کړو خو هغهٔ انکار وکړو. او وې وئيل چې خير دے زهٔ به پياده لاړ شم هسې نه چې اس ته ستاسو خپل ضرورت پيښ شي. ما دا پونډونه د شلو زرو روپو په عوض کښې بدل کړل او په هغې مې داروګان جامې او د خرڅ خوراک سامان د خپلو سړو دپاره واخستو.

په دې منځکښې د بنو او د پيښور ضلعې دوه انګريزي افسرانو زما ترهٔ ته چيټھی وليکله چې تهٔ په انګريزي علاقه کښې ولې پناه نهٔ اخلې چې په دوا کښې مقيم ئې. زما ترهٔ هغوي ته وليکل چې هر کله وائسراے هند ماته د دعوت چيټھی وليکي او مونږ سره وعده وکړي چې مونږ به د دريائے سندھ نه نهٔ پورې باسي نو مونږ به راشو. هغهٔ ماته ووئيل چې په دې چيټھی تهٔ هم مهر ولګوه خو ما انکار وکړو او ورته مې ووئيل چې ما چرې د انګريزانو د

دوستي خواړهٔ نهٔ دي ليدلي او کهٔ چرې تهٔ يو ځل د دوکې خوړلو نه پس بيا هم په هغوي اعتبار کوې نو بيشکه لاړ شه. ما هغهٔ ته ووئيل چې د راولپنډۍ نه د راواپس کيدو نه پس د انگريزانو متعلق ستا رائ ولې بدله شوه هرکله چې تا د هغوي د سردمهرۍ دومره شکايت کړے وهٔ هغهٔ ماته په جواب کښې ووئيل چې زما رائ هم هغه ده چې کومه وه او زما نيت د هغوي ملک ته د تلو بالکل نهٔ دے او زهٔ هيڅ بې هيڅه هغوي سره خط و کتابت کوم. ما ورته په جواب کښې ووئيل چې تهٔ دروغ وينا ته هيڅ بې هيڅه خط و کتابت کول وائ دا ښهٔ خوئ نهٔ دے. هغوي ته صفا وليکه چې زهٔ خپل ځان ستاسو د حکومت په حفاظت کښې نهٔ درکوم ځکه چې زمونږ له تاسو نه د ښيگړې څهٔ اميد نشته اخر کار هغهٔ هم هغسې وليکل څنگه چې ما ورته وې ليکن په هغې ما مهر ونهٔ لگولو او ورته مې ووې چې زما تش نوم کافي دے او زهٔ څهٔ منلے شوے سړے نهٔ يم. هغهٔ په دې زما نه شکايت وکړو او اخر کار څهٔ وخت چې هغه خفه شو نو ما خپل مهر ټکړې ټکړې کړو او قاصد ته مې ووې چې زما له طرفه زباني پيغام فيرنگيانو له يوسه چې زهٔ به هيچرې تاسو سره راشه درشه ونکړم ځکه چې تاسو زما د دوستانو دشمنان يئ او د هغوي دشمنان زما دشمنان دي. دا سړے پيښور او بنو ته راغے او غالباً چې زما پيغام ئ هغوي له ورکړو.

مونږ په دوا کښې اتهٔ ورځې نور پاتې شو او بيا کاني گرم ته روان شو. او د پنځو ورځو د مزل نه پس هلته ورسيدو. مونږه هلته اولس ورځې ايسار شو. زمونږ اسونه ښهٔ په دمه شول ځکه چې هلته ډير شنهٔ واښهٔ ولاړ وو. دلته زما پنځهٔ ورځې تبه وشوه ليکن مونږ وانا ته روان شو او دوه ورځې هلته پاتې شو او د هغې نه پس مونږ د گومل سيند نه پورې وتو. هرکله چې مونږ پورې وتو نو مونږ وليدل چې يو سړے مونږ له په دؤ دؤ راروان دے. او مونږ ته رومال خوځوي. ما هغهٔ له علي عسکر خان وليږلو چې تهٔ وگوره چې دې څهٔ وائي. مونږ حيران شو چې دا سړے نهٔ وهٔ بلکې ښځه وه چې د وزيرو قبيلې د افغانستان نه دولسو کالو په عمر کښې راپټه کړې وه اوس د هغې عمر شل کاله وهٔ او هغې د دې موقعې نه فائده وچته کړه او زمونږ حفاظت له ئ ځان راورسولو. ما د هغې طبع تسلي وکړه او يو اس مې ورله د سورلۍ دپاره ورکړو او لوظ مې ورسره وکړو چې زهٔ به تا خپل مور پلار له وليږم.

د هغه ځائے نه مونږ د شيرانو ملک ته لاړو او يو داسې ځاے ته ورسيدو چې پکښې صرف دوه کوټې وې هغوي سره وريژې نهٔ وې خو ورسره د خرخون دپاره يوه گڼه ځلور پيسان او درې چرگان وو. مونږه دغه وخت درې سوه تنه په شمار وو باقي زمونږ نه بنو ته رخصت شوي وو مونږه دا ځيزونه په بيعه واخستل او په څهٔ شان مو په هغې گزاره وکړه. په بله ورځ مونږ د کاکړزو يو کلي ته ورسيدو هلته مونږ اوړهٔ کُچ او نرې غوښه واخسته او دوؤ ورځو دپاره مو خوراک پوخ کړو. او د آئنده دپاره مو هم دغه شان کول. مونږ بيا ده برنگ

نومې کلي ته ورسیدو چې هلته مونږ د خرڅ خوراک د سامان ذخیره جمع کړه. علاوه زمونږ د ضروریاتو نه د هغه ځاے خلقو مختلف څیزونه په مونږ باندې د خرڅولو دپاره راوړل. او وې وئیل چې دا خامخا واخلئ لیکن مونږ انکار وکړو. په دې هغوي هغه سامان په زمکه پریښودو او په مخه لاړل. سحر له چې هغوي راغلل او وۀ ئ لیدل چې زمونږ څیزونو له چا ګوتې نۀ دي وروړې او نۀ مونږ په زور باندې په دوئ دا څیزونه خرڅولے شو نو هغوي مجبوراً خپل څیزونه واپس واخستل. او مونږ ته ئ بدرد ووئیل. هر کله چې مونږ یو څو میله وړاندې لاړو نو مونږ قریباً دوه زره سړي ولیدل چې مونږ ته په لاره کښې ولاړ دي او بربنډې تورې ئ نیولي دي. په دوئ کښې یو کس زما د ترۀ د اس واګې ونیوے ولې وړومبے د دې نه چې خپله توره ئ ورپسې راویستې وے زۀ په پویه وروسیدم او ټوپک مې د هغۀ سینې ته ونیولو او ورته مې ووې چې اولم دې هغۀ واګې پریښودې او هر کله چې ما د هغۀ نه تپوس وکړو چې مونږ ته څۀ وائ نو هغوي په جواب کښې ووئیل چې د دې ځاے نوم ژوب دے او کۀ چرې شل روپۍ سړي سر په طور د محصول رانۀ کړئ نو وړاندې تلو ته به مو پرې نۀ ږدو. ما ورته ووې چې کۀ تاسو له مونږ محصول درکړو نو بیا به کاکړ زمونږ نه په زور محصول غواړي. په دې وجه ما انکار وکړو او جګړې ته تیار شوم هغوي چې دا ولیدل نو وې وئیل چې مونږ خو توقې کولے بیا ئ مونږه وړاندې تلو ته پریښودو. د ورځې د مزل ختمولو نه وړومبے یو زوړ سړے لسو مریدانو سره سپین پټکے وهلے او غوړونو سره غنچې غنچې ویښتۀ پریښي او غټ کوتک ئ په لاس کښې نیولے مونږ سره په لاره کښې مخامخ شو. د دې پیر نه وړاندې د هغۀ دوه مریدان رااروان وو. او زما ترۀ ته ئ وئیل چې مونږ د دې وطن مشران یو. او څۀ وخت چې دا بوډا رابشکاره شو نو هغوي هغۀ ته ډیر ټیټ شو او مونږ ته ئ ووئیل چې دا یو بزرګ سید دے په دې زما ترۀ پاخیدو او د هغۀ لاسونه ئ ښکل کړل او بیا ئ خپل خوا کښې کښینولو. ما دا شان دروغژن سړي ډیر لیدلي وو او د دې سړي شکل زما په زړۀ کښې شک پیدا کړو چې د دې سړي په بزرګۍ کښې ضرور څۀ چل دے. زۀ چې به هر یو کلي ته ورسیدم نو دا زما خوئ وۀ چې د هغه ځاے خلقو سره واقفیت پیدا کړم او هغوي له څو روپۍ ورکړم چې د هغه کلي د ټولو واقعاتو خبر ماته راکړي. د دې مخبر نه چې ما تپوس وکړو نو هغۀ ماته ووې چې دا بوډا سړے مشهور و معروف غل دے او سل تنه نور ډاکوان د هغۀ لاندې دي چې د هغوي نه ئ څلویښت تنه ځان سره ستاسو د تالا کولو دپاره راوستي دي. ما خپل ترۀ ته د دې خبرې اطلاع ورکړه خو هغۀ زما په دې قصه اعتبار ونۀ کړو. او خپل زوي سرور خان ته ئ ووئیل چې دا بزرګ سړے به د شپې دپاره زمونږ په کیمپ کښې میلمه وي. قریباً نمرپریواتۀ یو څو تنه سړې د هغه کویانو نه چارچاپیره ودریدل چې د کوم نه زمونږ نوکرانو د خپلو اسونو د اوبۀ کولو نیت وۀ. ما چې دا ولیدل نو چونکې زۀ وړومبے نه د دغا بازۍ په

انتظار کښې وم نو ما دا چل وکړو چې خپل اسونه مې په وړو وړو ټولګو کښې تقسيم کړل او د دوچند سرو د حفاظت لاندې مې هغوي د کلي مختلفو حصو ته په مختلفو وختونو باندې اوبۀ کولو دپاره وليږل. او کوم کويان چې زمونږ د کيمپ په خوا کښې وو او دا غلۀ پرې زمونږ په انتظار کښې ناست وو او دا ئ خيال وۀ چې مونږ به خپلو اسونو له اوبۀ دلته ورکوؤ هغه مې پريښودل. په دې طريقه زمونږ اسونه چې په شمار کښې درې سوه وو ټول په ښۀ انتظام کيمپ ته راورسيدل. زما د ترۀ او د هغۀ د زوي تخميناً پنځوس اسونه وو د هغوي سړو سوال جواب راوړوچې دغه سړې چې د کوهي په غاړه ناست دي مونږ کوهي ته نۀ پريږدي. په دې هغه بزرګ خان په قهر کړو او وې وئيل زۀ به دې اسونو سره لاړ شم او خلقو ته به حکم وکړم چې ستا نوکران د اسونو اوبۀ کولو ته پريږدي. چنانچه هغه لاړو او چې لږ وړاندې شو نو هغۀ سائيسان په بوقو کښې د اوبو راويستو دپاره مخکښې وليږل او هر کله چې هغوي په کار کښې لګيا شول نو هغۀ او د هغۀ سړو ديرش اسونه وتښتول شل اسونه زمونږ سوررو ترينه راخلاص کړل ولې په هغې کښې پنځۀ اسونه زخميان شول زۀ موجود وم چې دې سړو دا قصه راوړه او ما په خپل ترۀ پورې ښۀ وخندل او ورته مې ووې ما درته ماسپښين ټوله خبره وکړه خو تا ورته غوږ کښېنښودو تا نه هغه مشهور متل هير شو چې د بنيادمو په لباس کښې ډير شيطانان ګرځي. نو هر چا له خپل لاس مۀ ورکوه. زما ترۀ او د هغۀ زوي سرور ټوله شپه په خپلو اسونو پسې ارمانونه کول او د خپلو نوکرانو زخمونه ئ تړل.

د بلې ورځې په مزل زما د ترۀ سړې مجبوراً يو د بل شا ته سوارۀ لاړل. په يوولسمه ورځ مونږ د کاکړو په ملک کښې يو کلي ته اول ماسپښين ورسيدو او زما سړو هلته ځان دپاره د خرڅ خوراک سامان جمع کړو. او ما ځان دپاره يو غټ ګډ کتلو يو ګډ مې بيامونده او شل روپۍ قيمت چې کوم د هغۀ مالک غوښتو هغه ې ورکړو. هر کله چې ما هغه حلالولو نو مالک ئ ووئيل چې ما خپل نيت بدل کړو او زۀ خپل ګډ واپس اخلم. ليکن هر کله چې ما هغۀ ته ووې چې تۀ خپل ګډ واپس اخستے شے نو هغۀ بيا خپله اراده بدله کړه او ما دپاره ګډ حلال شو. په دې هغۀ روپۍ ماته راوغورځولې او ماته ئ ووې چې زما ګډ ژوندے کړه ما ورته په جواب کښې ووې چې دا خو زما د طاقت نه بهر خبره ده البته دا کولے شم چې هم دا خپل ګډ واخله او هم روپۍ. هغۀ بيا انکار وکړو او ماته ئ ووې چې تۀ به ماته دا ګډ ژوندے کوے. په دې زۀ مجبور شوم چې هغۀ سره يو چل وکړم نو ما يومُلا ته چې هلته ولاړ وۀ مخ واړولو او ورته مې ووې چې د ډيرې شيبې نه دا سړے تاته کنځل کوي په دې مُلا د ګډ خاوند ته متوجه شو نو ما هم هغۀ ته ووئيل چې کۀ ماته کنځل کوے نو بيشکه کوه ليکن دې بزرګ سړي ته چې بالکل پيغمبر دے کنځل مۀ کوه. مُلا په دې قدرتي طور ډير په قهر شو او هغه سړي ته ئ ووئيل چې سُوره ماته ولې کنځل کوے؟ د ګډ خاوند هم هغۀ ته په جواب

کښې کنځل وکړل په دې د هغوي دواړو جګړه شوه او ما هم ګډه او هم روپۍ راواخستې او هغوي مې پرېښودل چې خپله جګړه فيصله کړي. د کلي نيم خلق د مُلا په طرف شول او نيم د ګډې د خاوند په طرف شول. او د دواړو ډلو ښه جګړه وشوه او اخر نور خلق ترمنځه شو. يو ګينټه پس د ګډې خاوند ماله دوه کنډوله داغ شوي ماستهٔ او اګۍ دوه شکوره روټۍ او يو وريت کړے ګډورے راوړو او سلام ئ راته وکړو. ما هغهٔ ته ووې چې لږ ساعت وشو چې تهٔ ډير بې ادبه وے او اوس په تعظيم ولاړ ئ. بيا چې ما د هغهٔ د ګفتګو نه معلومه کړه چې هغه د ښهٔ عقل خاوند دے نو ما هغهٔ نه تپوس وکړو چې تا ما سره د جګړې پيدا کولو دپاره د ګډې بهانه ولې جوړه کړه نو هغهٔ په جواب کښې ووې چې سرور خان ما سره په قندهار کښې بد سلوک کړے وهٔ او په دې وجه ما د هغې بدل له تانه اخستو. ما په جواب کښې ووې چې سردار سرور خان پخپله دلته کښې وهٔ نو تهٔ د هغهٔ په ځاے ما سره ولې جګړه کوے. بيا هغهٔ ماته د دې دا تشريح وکړه چې چونکې تا سرور په قندهار کښې ګورنر مقرر کړے وهٔ نو زهٔ تا د دې خبرې ذمه وار ګڼم. مونږ بيا تر څو ګينټو پورې خبرې کولې چې هغه کوز ته لاړ او زهٔ اودهٔ شوم.

په بله ورځ مونږ بيا په خپله لار باندې په سخته سيلۍ او طوفان کښې روان شو هر کله چې مونږ د هغې کلي خوا ته ورسيدو چې په کوم کښې زمونږ د ډيره کيدو اراده وه نو د دغه قبيلې مشر دوۀ سورو سره زمونږ د استقبال دپاره راووتو قبل د دې نه چې هغه مونږ سره مخامخ شوے وے د هغهٔ يو نوکر راغے او مونږ ته ئ ووې شاه جهان بادشاه ستاسو د استقبال دپاره په لاره راروان دے نو پکار دي چې تاسو د اسونو نه کوز شئ او هغهٔ تر ورترغاړه وځئ. زما ترهٔ ما نه تپوس وکړو چې څهٔ کول پکار دي ما ورته په جواب کښې ووې چې لږ صبر وکړه، زهٔ به مخکښې لاړ شم چنانچه زهٔ مخکښې لاړم او وهٔ مې ليدل چې دوه تنه سرې مونږ طرف ته راروان دي ما په هغوي کښې د يو کس نه تپوس وکړو چې ستا هغه بادشاه کوم يو دے؟ د دې په جواب کښې هغهٔ خپل ملګري ته اشاره وکړه چې دا دے. دا برائ نام بادشاه يو زوړ سړے وهٔ چې يو زوړ پوستين ئ اغوستې وهٔ دا پوستين چې کوم کوم ځاے شليدلے وهٔ نو هغهٔ ورته رنګ په رنګ ټکړې ګنډلې وے. هغهٔ په سر يو داسې خيرن پټکے وهلے وهٔ چې د خيرن والي په سبب دا نهٔ معلوميده چې دا پټکے د څهٔ څيز وهٔ. په دې پټکي کښې کلاه هم نهٔ وه د هغهٔ په پښو د وړي جرابې وے ولې پڼې ئ نهٔ وے. د هغهٔ اسپه خالص هډوکي او څرمن وه او د هغې پښو پورې ئ ګونګرو تړلي وو او زين ئ د لرګي وهٔ. قيزې ئ د ويښتو نه جوړې شوې وے او په هغې کښې ځاے په ځاے ګونګرو زوړند وو. ما دې ښکلې بشرې پورې ډير وخندل. او چې ورنږدې شوم نو ما هغهٔ ته ووئيل چې دا به ډير افسوس وي چې کهٔ چرې تهٔ زمونږ امير سره د معانقې دپاره د اس نه کوز شوې. نو ښه به دا وي چې هسې زباني طور تهٔ

هغۀ سره ګړه بړه وکړې. دا خبره هغۀ ومنله او زۀ په پوره واپس ترۀ له راغلم او ورته مې ووې
چې شاهجهان به بغير د اس د کوزيدو نه تاته خوش آمديد ووائي هر کله چې هغوي مخامخ
شول نو زما د ترۀ اس د دې عجيب و غريب شکل نه چې د ګونګرو نه ډک وۀ ويريدو او په
وروستو دوؤ پښو ودريدو. او په ترپکو شو زما ترۀ ډير ويريدو او ماته ئ د امداد دپاره
اوازونه وکړل ليکن ما وخندل او ورته مې ووې چې زۀ د دوؤ بادشاهانو په معامله کښې څنګه
دخل ورکولے شم. هغۀ چغه کړه چې د خدائے دپاره څۀ چل راته وښيه ګنې اس مې غورځوي.
دا د ټوقو وخت نۀ دے. ما په جواب کښې ورته ووې چې کۀ ما له څۀ راکوے نو زۀ به درسره
مدد وکړم هغۀ ما له د خپلې تورې راکولو لوظ وکړو او ما د هغۀ خبره ومنله. ما اول د خپل
ترۀ اس په قلاره کړو او بيا شاه جهان له ورغلم او ورته مې ووې چې ما سره راځه چې زۀ ستا د
ملګرو د ډوډۍ څۀ انتظام وکړم هغۀ ماته ووئيل چې ما د بيزې د غوښې ښوروا پخ کړې ده او
د جوارو څلويښت سکرک راسره دي. ما هغۀ له تسلي ورکړه چې دا خو ډيره اعلیٰ ډوډۍ
ده خو راځه چې مخکښې لاړ شو نو بيا به ګورو. په دې بهانه ما هغه د اسونو نه يو خوا ته کړو.
چې يو ميل لاړو نو ما ورته ووې چې ما نه خو څۀ ضروريات وروستو پاتې شول نو زۀ بيا واپس
کيږم چې راځ ئ وړم. وړومبے خو هغه بغير زما نه د وړاندې د تلو نه انکار وکړو ولې څۀ وخت
چې ما هغۀ ته ووې چې زۀ به ځان سره مصري راوړم نو خوشحاله شو او سمدستي رضا شو.
زۀ بيا خپل ترۀ له راغلم او هغۀ نه مې تپوس وکړو چې د داسې لوے بادشاه متعلق ستا څۀ خيال
دے هغه په دې په خندا شو. هر کله چې مونږ په هغه کلي کښې ورداخل شو نو مونږ چې څۀ
وخت د بادشاه تلاش شروع کړو خو بيا مونۀ موندو. اخر کار مونږ هغه د ونو په يوه جونګړه
کښې بياموندو. هغۀ ماته ووې چې د ډوډۍ د پخلي دپاره ما د ځنګل نه لرګي راغوښتي دي
خو لا نۀ دي رارسيدلي. علاوه د دې نه روټۍ لا نۀ ده پخه شوې ځکه چې تبخے د وادۀ دپاره
چا غوښتي دے ما ورته په جواب کښې ووې چې هيڅ پروا نشته کۀ تا سره د خوراک دپاره
څۀ نۀ وي مونږ خو ستا ميلمانۀ شو بيا ما خپل د خوراک سامان راوغوښتو او د خلقو نه مې
تپوس وکړو چې دا ستاسو بادشاه او سردار دے هغوي ووې چې هو. نو ما ورته ووئيل چې
تاسو څومره قابل خلق يئ چې دومره طاقتور بادشاه لرئ. او هرڅومره چې ما د هغوي
خوشامنده کوله نو هغه هومره هغوي خوشحاليدل. هغه شپه مونږ په ځنګل کښې وکړه او په
بله ورځ بادشاه راغے او ماته ئ ووئيل چې ستاسو بل پړاؤ به زما د تربور دوست محمد په
کلي کښې وي او هغه به زما نه زياتي په ګرم جوشۍ ستاسو استقبال وکړي. هغۀ راته ووې چې
دا به ښه وي چې مونږ سحر وختي روان شو. مونږ بيا د يو رهبر کوشش وکړو خو هغۀ په دې
سلسله کښې خپل خدمات پيش کړل. ما ترۀ ته ووئيل چې د دې ضرور څۀ وجه ده خو هغۀ
ووئيل چې هيڅ هم نشته او مونږ روان شو. د وړومبۍ ورځې د مزل نه پس مونږ د يو لوړ غر

ویخ تـه ورسیدو. او بله ورځ مونږ په یو بل غر وختو او په لاره په یو داسې کلي باندې تیر شو چې ابادي پکښې هډو وه نه. ما ترهٔ ته ووئیل چې دا شیطان مونږه په غلطه لار بیائي او نهٔ خو د اسـونـو دپـاره وابـښـهٔ شته او نهٔ د سړو دپاره خوراک. ما هغهٔ ته ووې چې کهٔ مونږ سره د دوؤ ورځو خوراک نهٔ وې نو مونږ به څهٔ کول. مونږ هغه شپه په ځنګل کښې وکړه.

بـلـه ورځ دوسـت مـحـمـد دوؤ زرو سـړو سـره زمـونـږ مخې له راغـې او د ځان نه ئ ورانـدې یـو سـړے راولـیـږلـو چـې زهٔ د خدمت دپاره حاضر یم. هغهٔ مونږ نه تپوس وکړو چې تـاسـو په دومره ګرانه لار ولې راغلي يئ. او سمه لار مو پریښې ده او هر کله چې هغهٔ ته دا پته ولـګـیـده چـې زمونږ رهبر د هغهٔ تربور دے نو هغهٔ مونږ ته ووئیل چې دې ماته په طور د دشمن حـواله کړئ ځکه چې دهٔ تاسو په دې لویو لویو غرونو د دې دپاره راوستي يئ چې د کلي نه مو پـه ډډه بـوځـي او مـا په خلقو کښې بې عزته کړي. هغهٔ مونږ ته ووئیل چې زما کور ته د راتلو دپاره بیا ډیره لار واپس لاړ شئ او دا چې ما ستاسو دپاره مدک د ښبنلو دپاره تیار کړي دي نـو امـیـد کـوم چـې زهٔ به ستاسو دپاره ښه میلمستیا وکړم. ما ترهٔ ته ووې چې کهٔ زما خبره دې مـنـلـے وے نـو دا شان چل به نهٔ کیدو. د دې دوؤ شیطانانو ترمنځه مونږ له څهٔ شے کول پکار دي؟ مـونـږ چـې دا خبرې کولې نو یو ښو غلو چې دوست محمد زمونږ د مال تالا کولو دپاره راستـولـي وو زمـونـږ د سـامـان پـتـولو کوشش وکړو او زمونږ سړو په هغوي ډزې وکړې او زخـمـیـان ئ کـړل. شاه جهان چې دا واوریدل نو ځان ئ پټ کړو. او ما ترهٔ ته ووې چې اوس په شپه د دې ځاے نه تلهٔ پکار دي. ګنې نو د دوست محمد سړي به مونږ سره جګړه واچوي. اخـر مـونـږ شـاه جهان بیـامـوندو او هغهٔ ته مو ووې چې چونکې تا مونږ دلته راوستي يو د دې دپـاره هـم تـهٔ بـه مونږ واپس بیائ. هغهٔ راته ووې چې ما ځان د دې ویرې نه پټ کړے وهٔ چې چـرتـه تـاسـو مـا زما دشمن دوست محمد ته حواله نهٔ کړئ. ولې مونږ ورسره لوظ وکړو چې مـونـږ بـه دا شان نهٔ کوؤ. او ټوله شپه مونږ هغهٔ سره مزل وکړو اګر چې یخني ډیره زیاته وه د بـلـې ورځـې تـر مـاسپښین پورې مونږ په یو داسې کلي تیر نشو چې کوم ځاے مونږ خوراک بیـامـونـدے وے. اخـر مونږ یو خوشې کلي ته ورسیدو او هلته هم ناامیده شو. ما د شیطانانو د دې بـادشـاه نـه تپـوس وکـړو چې دا خلق کوم خوا تلے دے هغهٔ راته ووې چې دا خلق سپرلي کښې واپس راځي. او څهٔ وخت چې یخني پریوځي نو دا وچت غر چې زمونږ مخې ته پروت دے د دې سـوکـې تـه وخـیـژي. مـا ورتـه ووې چې ستا د پلار خونه ورانه شه په مونږ کښې او زمونږ په اسونو کښې خو نور طاقت پاتې نشو. دا ټول ستا ورانے دے. هغهٔ راته ووې چې دا به ښه وي چې مونږ دې غرهٔ ته لاړ شو او هلته دا خلق ووینو هغوي به مونږ له ډوډۍ راکړي. هغهٔ دا هـم ووې چـې زهٔ تاسو سره نشم تلے ځکه چې دا قام زما او زما د خاندان دشمنان دي. مونږ خـوشـحـالـه شو چې د دې سړي نه خلاص شو. او هغهٔ له مو رخصت ورکړو او نمرپریواتهٔ نه

پس مونږه په هغې غرۀ باندې د هغې قبيلو کوډلو ته ورسيدو چې د چا هغۀ ذکر کړے وۀ. هغوي زمونږ په ډيرې مهربانئ سره استقبال وکړو خو وروميے مونږ سره په دې خيال د جنگ دپاره تيار شوي وو چې مونږه د هغوي د مخالفې ډلې سوارۀ يو. مونږ ډير خوشحاله شو چې ډوډې مو بيامونده. او اسونو له مو وابښۀ ورکړل. ليکن هغوي مونږ دې ته پرې نښودو چې مونږ هغوي له د دې څيزونو قيمت ورکړے وے.

مونږ دوه ورځې د هغوي ميلمستيا وخوړه او بيا د کوتل سيري په لاره پشين ته روان شو. هرکله چې مونږ د پشين په خوا کښې يو کلي ته ورسيدو نو يو مخبر ماته اطلاع راکړه چې گورنر د ماليې څلويښت زره روپۍ جمع کړي دي او قندهار ته ئې د استولو اراده ده ما ترۀ سره مصلحت وکړو او ورته مې ووئيل چې ټوله شپه به زۀ منزل وکړم او د نمرخاتۀ نه وړومبے به زۀ په هغه کلي ورپريوځم او دا روپۍ به قبضه کړم. زما دا تجويز يو څو نوکرانو د انعام په اميد ناکامياب کړو او هغوي گورنر ته زما د ارادې د اطلاع ورکولو دپاره زما نه وړومبے روان شو په دې هغۀ سل سړي د چارچاپيره کلو نه د قلا مضبوطولو په غرض راجمع کړل. زما د ښۀ نصيبه ما خپل يو مخبر د څان نه وړاندې استولے وۀ چې زما د رارسيدو انتظار وکړي. چنانچه دې سړي زما د ترۀ د پنځو سورو د دغا بازۍ دا خبر راوړو. چونکې زۀ په خپل مقصد کښې ناکامياب شوم له دې کبله زۀ کاريز وزير ته واپس شوم او دوه ورځې هلته مقيم شوم. د دې ځاے خلق ځان ته سيدان وائي ليکن زما دا خيال دے چې هغوي د دې خطاب هرگز مستحق نۀ دي. ځکه چې فياضي، خوش اخلاقي او رحم د سيدانو صفات دي ليکن په دوئ کښې دا يو صفت هم نۀ وۀ. هغوي ښائسته، مضبوط او دولت مند خلق دے. ليکن په خپلو کښې د يو بل سخت برخلاف دي او يو بل وژني چې د دې قدرتي نتيجه جگړې دي. دې ځاے نه د رخصت کيدو نه پس مونږ ابرک نومے يو کلي کښې ايسار شو. نوشکي ته په لاره کښې ټوله ورځ ډير باران وشو او ډيره يخه سيلۍ وچليده. مونږ لوانده شو او زمونږ لاسونه او پښې کنگل شول مونږ د ډير تکليف نه پس نوشکي ته ورسيدو. ليکن خلق مونږ سره په ډيره مهربانئ پيش راغلل. بله ورځ مونږ رخصت شو او زمونږه لار په يوه شگلنه صحرا کښې تله. چې پکښې اوبۀ بالکل نۀ وے او مونږ په واپس کيدو مجبور شو او مونږ ته خلقو صلاح راکړه چې دا به ښه وي چې کۀ مونږ د خرڼ په لاره روان شو. اګرچې دا لار به د شلورو پنځو ورځو په منزل وړده وي. خو سره د دې ما په شگلنه لار باندې د تلو فيصله وکړه. او دوه سوه اوښان مې د خرڅ خوراک د سامان د وړلو دپاره کرائي کړل. او مونږ بيا په ريگستان کښې روان شو د خداے پاک داسې فضل وشو چې هره ورځ به باران کيدو او زمونږ د حاجت مطابق به کافي اوبۀ په لاس راتلې. په لسمه ورځ مونږ ته شگې په نظر راغله. دا ټوله لار بارانونو ورانه کړې وه او مونږ مجبور شو چې د اسونو نه کوز شو او تر زنگون

پورې په ژوره ختمه کښې اسونو سره پیاده لاړ شو. د هغې ورځې د مزل نه پس سړي او اسونه دواړه ډیر سخت ستومانه شو. ما پخپله څۀ غوښه پخه کړه او په هغه کسانو کښې مې تقسیم کړه چې بیهوشی ته نزدې شوي وو اسونه ټول په دې منځکښې سملاستل او بیا د پاڅیدو نۀ وو صرف زما یو اس چې عربي وۀ او زما د نیکۀ د اصطبل کورنے بیاڼ وۀ ولاړ پاتې شو.

تر دوؤ ورځو پورې مونږ په ډیره تنګسیا کښې وو ولې په دریمه ورځ مونږ شګی ته ورسیدو مونږ حیران شو، چې د هغه کلي خان په دې رضا نۀ وۀ چې مونږ ته په خپل کلي کښې هر کلے ووائي. مونږ څو ورځې هلته پاتې شو او یو دوه هفتې پس یو نوکر زما ترۀ له راغے او ورته ئې ووې چې خان او امیر اجازت غواړي چې ستا سلام له ر شي. ما ترینه تپوس وکړو چې وړومبے دوئ ولې سلام له نۀ راتلل. هغۀ ماته په جواب کښې ووې چې د دې وجه دا ده چې د هغوي د رعیت ټول خلق د خپلو اسونو څرولو دپاره ځنګل ته تلي وو هغوي اوس واپس شول او پنځۀ سوه اسونه ستاسو د سلام دپاره جمع شوي دي. مونږ د هغوي سوال منظور کړو. او خان د قلا نه پیاده پنځۀ سوه سړو سره چې په یو قطار کښې راروان وو بهر ته پیاده راووتل. د هغۀ نه مخکښې دوه ګلېډونکي هلکان یو د نهو کالو او بل د دولسو کالو راروان وو د هغوي شکلونه قطعاً د بنیادمو پشان نۀ ښکاریدل. ځکه چې د هغوي په بدن ما سوائ د یو ورکوټي لنګوټ نه نوره کپړه نۀ وه او ویښتۀ ئ د ختمو نه ډک وۀ چې نۀ ئ چرې صابون لیدلے وۀ او نۀ اوبۀ. هغوي سره یو جوړه ساز د غږولو دپاره وۀ او دا زمونږ هغه لوے استقبال وۀ چې د هغې په تیاری کښې پنځلس ورځې لګیدلي وے. مونږ په شګی کښې پنځویشت ورځې پاتې شو او په دې عرصه کښې زمونږ اسونه ښۀ څاربۀ شول ځکه چې اوچ او لواندۀ واښۀ دواړه ډیر وو.

مونږ بیا د هلمند سیند په خوا خوا کښې پلالیک طرف ته روان شو. او شپږ ورځې پس خیل شاه ګل کښې داخل شو. خیل شاه ګل نومے یو بلوچي سردار په نوم دا کلے مشهور وۀ. دا کلے ما سوائ د دوؤ زړو سړو نه نور بالکل خوشے پروت وۀ او دې دوؤ سړو هم دا انتهائي کوشش کولو چې مونږ د چا په نظر رانشو. مونږ چې تپوس وکړو چې دا کلے ولې خوشے پروت دے نو وړومبے خو هغوي ووئیل چې مونږ خبر نۀ یو ولې هر کله چې مونږ بیا بیا تپوس وکړو نو هغوي راته ووئیل چې د قلات د میر عالم خان فوځ د سردار شریف خان سیستاني د کمان لاندې د دې خلقو د مال تالا کولو دپاره راروان دي په دې وجه هغوي نزدې ځاے ته تبنتیدلي دي چې خپل ځانونه پټ کړي. زما ترۀ هغوي ته ووئیل چې کۀ چرې تاسو مونږ هغه ځاے له بوځئ کوم ځاے چې هغوي پټ دي نو مونږ به هغوي سره امداد وکړو. دې بوډاګانوسړو مونږه هغوي له بوتلو او شاه ګل زمونږه په لیدو ډیر خوشحاله شو او زمونږ د امداد په وعده په طبع کښې شو هغۀ مونږ له لویه ډوډۍ وکړه او چې نیمه شپه شوه نو د هغۀ

دوؤ نوکرانو خبر راوړو چې سیستاني سوارهٔ د هغه بل کلي نه راتیر شو او سبا له به د هغهٔ په قلا کښې داخل شي. شاه ګل مونږ ته ووئیل چې زما اراده ده چې زهٔ سبا له د خپل رعیت خلقو او د هغوي مال سره په غرهٔ باندې یو مستحکم ځاے ته لاړ شم. زما ترهٔ ما نه صلاح واخسته نو ما ورته ووې چې کهٔ چرې د دوئ خوښه وي نو دوئ تلے شي ولې کهٔ چرې شاه ګل مونږ له یو رهبر راکړي نو مونږ به هم سیستانیانو سره د جګړې دپاره ووځو. دا رهبر مونږ له هغهٔ راکړو او هرکله چې هغه غرونو ته رخصت شو نو مونږ په بل مخ روان شو.

د یو ځو ګینټو د مزل نه پس مونږ د سورو د راتلو دوړې ولیدې او مونږ د جنګ دپاره تیارے وکړو زهٔ سره د خپلو سړو د خپل ترهٔ نه وړاندې لاړم او سپاهیان مې د جنګ په نظام کښې ودرول ولې سیستانیانو چې زهٔ ولیدم نو دا شان حیران پاتې شو چې هغوي مونږ سره دجګړې اراده پریښوده او تپوسونه ئې شروع کړل. چې دا څوک دے مونږ ورته په جواب کښې ووئیل چې مونږه پښتانهٔ یو او بلوچ نهٔ یو. د هغوي سردار چې دا واوریدل نو هغهٔ مونږ له سلام له راغے ما ترهٔ پسې سوال جواب وکړو او مونږ دواړو هغهٔ ته ووې چې مونږ خو د شاه ګل او د هغهٔ د رعیت د خلقو امداد له راغلي یو ځکه چې هغوي د پښتنو د حکومت د لاندې دي سیستانیانو له پکار نهٔ دي چې هغوي دوئ سره چیړ چاړ وکړي. دې سردار زما خبره ومنله لیکن دا شرط ئې پیش کړو چې زما د وقار ساتلو دپاره شاه ګل له پکار دي چې زما سلام وکړي. ما د شاه ګل سړو ته ووئیل چې تاسو شاه ګل له د دې خبرې اجازت ورکړئ لیکن د هغهٔ خور د هغهٔ په سلامتي دومره ویریده چې هغې هغهٔ له د تلو اجازت نهٔ ورکولو ما هغوي ته ووې چې زهٔ به ضامن شم. کهٔ چرې شاه ګل زما ترهٔ سره تلل منظور کړي نو اخر هغوي دا خبره منظوره کړه او ما خپل ترهٔ ته په ډیر زور سره ووې چې زیات نه زیات څلور پنځهٔ ورځې پس شاه ګل واپس راولیږه. اووهٔ ورځې تیرې شوې خو د شاه ګل څهٔ پته ونهٔ لګیده او د هغهٔ د قام ټول خلق راغلل چې خپل لوظ پوره کړه. مونږ دوه ورځې نور زیاتي انتظار وکړو خو زمونږ دا یقین دے چې زمونږ سردار ګرفتار شوے دے. ما هغوي له اطمینان ورکړو چې دا خبره دا شان نهٔ ده او ما ورته دا خبره پیش کړه چې زهٔ به پخپله لاړ شم او شاه ګل به ځان سره راولم خو هغوي زما خبره نهٔ منله او وې وئیل چې تر څو پورې هغه بهر دے تر هغې به تهٔ زمونږه قیدي ئې. ما خپل دوه سوه سړي تیار کړل چې ممکن ده په ما حمله وشي او لږ ساعت پس هغوي وښکلې تورې په لاس یو ځاے راغلل. ما خپلو نیمو سورو ته حکم وکړو چې وولې ئې او نیمو ته مې حکم وکړو چې تاسو په تورو په هغوي حمله وکړئ. په دې هغوي خپل ځایونو ته وتښتیدل. ما خپل ټول سامان په دوؤ سوؤ اوښانو ولیږدولو. او په هغه طرف روان شوم چې کوم طرف ته شاه ګل تلے وهٔ لږ ساعت پس د هغهٔ د رعیت خلق مونږ پسې راروان شول او د خپل غلط کارئ مونږ نه معافي وغوښته ما هغوي سیستان ته بوتلل او د هغه

ځای نه مې د هغوي اوښان واپس کړل.

د دوؤ ورځو د مزل نه پس زهٔ هغه کلي ته ورسيدم او رسيدو سره مې د خپل ترهٔ او د شاه ګل تپوس وکړو ترهٔ مې راته ووئيل چې د دې خلقو دوه سرداران دي د يو سردار نوم شريف خان دے چې د سيستاني سورو مشر دے او د بل نوم موسيٰ يوسف هزاره دے. د مير عالم خانّ د باډي ګارډ د محافظې دستې مشر دے. دې موسيٰ يوسف هزاره شاه ګل قيد کړے دے او زما په خبره بالکل توجه نهٔ کوي. زهٔ نيغ دې سردار له ورغلم او د اس د کوزيدو نه بغير مې هغهٔ سره روغ جوړ وکړل او ورته مې ووئيل چې شاه ګل چرته دے په دې هغه راووتو ما موسيٰ يوسف هزاره نه وجه تپوس کړه چې تا ولې دا سړے قيد کړے دے نو هغهٔ ماته په جواب کښې ووې چې زما اراده ده چې زهٔ دې خپل سردار مير عالم له بوځم. ما ورته ووئيل چې ما دا سړے تاسو ته د دې دپاره استولے وهٔ چې دې به تاسو صحيح سلامت واپس کوئ او زهٔ د دې دپاره هغوي سره بونګه وم. هغه څهٔ ستاسو د رعيت سړے نهٔ دے چې تاسو ئې مير عالم له بيائ. ما بيا شاه ګل او د هغهٔ يو نوکر چې هغه هم هغهٔ سره قيدي وهٔ ځان سره راوستل او دواړه مې خپلو لسو سورو سره خپل قام ته واپس کړل او هغوي د هغهٔ په سلامتۍ ډير خوشحاله شو.

د دريو ورځو د قيام نه پس مونږ د سيستانيانو سره د هغوي ملک ته روان شو. په دويمه ورځ چې مونږ د هلمند سيند ته ورسيدو نو مونږ د قندهار د رعيت پنځلس ګډې وليدې چې په هغوي باندې د هم هغه هزاره سردار ځنې سوارهٔ حمله کوي چې چا د پلاليک قبيلې د تالا کولو نيت کړے وهٔ. د دې ګډو سړو خپل ځانونه محفوظ کړل او پنځوس هزاره سوارهٔ ئې وويشتل او سل ئې ژوبل کړل په دې منځکښې د خواوشا کلو خلق راجمع شول او د سورو د مقابلې دپاره ئې ځان تيار کړو. معاملات تر دې حده رارسيدلي وو چې زمونږ فوځ دې کلي ته راورسيدو ما خپلو نوکرانو ته حکم وکړو چې دا هزاره سردار چې چا خپل سوارهٔ د دې کلي د لوټ کولو دپاره راستولي وو، دې ښهٔ ووهئ او ما د دې کلي خلقو له ښهٔ ډاډګيرنه ورکړه او ورسره مې لوظ وکړو چې ستاسو د آئنده سلامتۍ دپاره به زهٔ ستاسو دشمنانو سره سم شرطونه فيصله کړم. زهٔ پياده قلا ته ورغلم په هغې کښې فوځ پروت وهٔ ليکن چونکې ما سره نهٔ توپې وے او اندرپايې. له دې کبله په هغې کښې رژ کول ناممکن وو. په دې وجه ما هغوي سره د صلح کولو دپاره يو نوکر وليږلو دې سړي ته هغوي د دننه تلو اجازت وکړو او هغهٔ هغوي ته دا خبره ښکاره کړه چې ستاسو د ټولو تکليفونو سبب يو هزاره سردار دے او هغه له عبدالرحمٰن سزا ورکړه او وې شړلو او اوس تاسو له پکار دي چې تاسو په امن و امان باندې خپلو کورونو ته واپس لاړ شئ. هغوي چې دا واوريدل نو د هغوي يو څو مشران د قلا نه بهر زما سلام له راووتل او ما هغوي ته اطمينان ورکړو. چې تاسو زما ورونه ئ

ځکه چې تاسو هم پښتانهٔ يئ . مونږ بيا ټول واپس روان شو او دوه شپې او ورځې زمونږ لار د دې خلقو په کلو کښې وه هغوي مونږ له د خرڅ خوراک سامان راکړو ليکن سيستانيانو سورو ته ئ هيڅ ور نهٔ کړل له دې کبله مونږ مجبوراً هغوي له ډوډۍ ورکوله تر دې چې مونږ بنجر ته ورسيدو . هلته د مليشيا خلق خپلو خپلو کورونو ته لاړل او فوځيان مير عالم خان ته واپس شول چې هغه مونږ ته د هر کلي وئيلو دپاره راولي.

سردار شريف خان مونږ له په خپل کلي شريف اباد کښې ډوډۍ وکړه چې دوو ورځو پورې روانه وه په دريمه ورځ مونږ د مير عالم قلا ته روان شو او هغهٔ زمونږ د استقبال دپاره راووتو زما ترهٔ او ما سره ترغاړه وتو او د هغې نه پس مونږ د هغهٔ په نوي قلا ورننوتو هغهٔ زمونږ د استقبال دپاره ډيرې تيارۍ کړې وے او زمونږ د سورو دپاره ئ نوې خيمې د قلا نه چارچاپيره او زما د ترهٔ او زما دپاره ئ لوے لوے خيمې لګولے وے . هغه يو ښهٔ هوښيار سړے زمونږ د مهمانداري دپاره مقرر کړے وۀ چې هغه زمونږ د ارام انتظام وکړي هغوي مونږ دولس ورځې خپل ځان سره ميلمانهٔ کړو او د هغې نه پس مونږه قولاب سيستان ته روان شو. مونږه چې د مير عالم خان نه رخصتيدو نو هغهٔ مونږ ته منت وکړو چې دا ټولې خيمې او سامان تاسو ځان سره واخلئ او وې وئيل چې چونکې زهٔ ستاسو ګاونډې يم نو زهٔ غواړم چې زهٔ ستاسو هر قسم خاطر تواضع وکړم. مونږ د هغهٔ شکريه ادا کړه او د هغې څيزونو د اخستو نه مې انکار وکړو. ليکن چونکې هغهٔ اصرار کولو له دې کبله مونږ دوه يا درې ورې خيمې منظورې کړې هغهٔ مونږ له لس زره ايراني روپۍ هم تر بيرجن پورې د خرڅ دپاره راکړې دا روپۍ ما خپل ترهٔ له ورکړې او ورته مې ووې چې ما سره کافي روپۍ شته. کهٔ چرې زهٔ د آئنده دپاره حسب معمول ستا اخراجات نهٔ ورکوم نو ما سره لا هم هغه شان دوه سوه پونډه د هغې روپو نه پاتې وو چې کوم د عبدالرحيم خزانچي راوړي وو.

د قولاب سيستان (چې د هغه ځاے خلقو ورته هامون وئيل) نه چې ووتو نو بندر کښې داخل شو د هغه ځاے د نهټه نه لاره دشت لوط کښې او د هغې ځاے نه برجن علاقه کښې داخل شو هلته د ميرعالم خان دوۀ زامنو مونږ ته په ګرمجوشي هر کلے ووئيلو او د هغهٔ مور مونږ له يوه لويه ډوډۍ وکړله.

د محرم پنځم تاريخ وۀ چې مونږ برجن کښې داخل شو او هم د دې مياشتې په دولسم تاريخ مونږ مشهد ته روان شو چې د اتم امام رضا روضه په هغه ځاے کښې واقع ده. مونږ د صراحيان په ښار کښې داخل شو او مونږ د زړو عمارتونو وران عظيم الشان کنډرات وليدل. زمونږ بل پړاؤ په نيسي کښې وۀ چې د صحت دپاره ډير مضر ځاے وۀ د هغه ځاے اوبهٔ مالګينې او ترخې دي. او خلقو د څښلو د اوبو دپاره لوے لوے تالابونه د باران د اوبو د جمع کولو په غرض جوړ کړي وو هغوي دوه کوهان هم کنستي وو ولې اګرچې دا اوبهٔ د

پخلي دپاره ښې وے ولې د څښلو قابلې نۀ وے . د بدنصيبۍ نه دې کلي ته د رسيدو نه وروستې زما په تـرۀ سـختي تبې حمله وکړه او مونږ هلته د هغۀ تر جوړېدو پورې په پاتې کېدو مجبور شـو. قـريباً يوه مياشت د هغۀ په جوړېدو کښې ولګېده او تر هغې پورې زما ټولې روپۍ خرڅ شـوې ما هغۀ ته منت وکړو چې زۀ تا له د يو تخت روان د جوړولو انتظام کوم ځکه چې هغه لا هـم هـغـه شـان کمزورے وۀ ليکن هغۀ په جواب کښې ووئيل چې د دې جوړول ناممکن دي. ځـکـه چې هلته ونې نۀ وے چې لرګي ترې پرې کړې شي ما د دې هغۀ له هيڅ جواب ورنکړو او د يـو عمارت نه مې چې خلقو په طور د جومات استعمالولو څلور لرګي پرې کړل او هر کله چـې د هغه ځاے خلقو په دې اعتراض وکړو نو ما ورته ووئيل چې مونږ ميلمانۀ يو او د بيمارۍ په زحمت کښې پراتۀ يو په دې وجه زۀ د خداے تعالیٰ مال په ډېر ښۀ ځاے کښې لګوم يعنې دا چـې د هـغـۀ مـصيبت زده مخلوق ته امداد رسوم په دې خبره د هغوی تسلي وشوه. هم په هغه ورځ تـر مـاښامه ما تخت روان تيار کړو او مونږ تربيت عيسیٰ خان ته روان شو او د هغه ځاے نه کـاريـز شهـزاده نـومے يو ځاے ته روان شو چې يو ډېر صحت افزا مقام ګڼلے شي. شهزاده هـلتـه يـو ډېـر ښـکـلے کور ځان ته جوړ کړے وۀ او زما ترۀ څۀ وخت دپاره هغې کښې ديره شو .او مـا بـه د هـغۀ خوراک پخپله پخولو او د هغۀ خدمت به مې کولو .مونږ سره د نوکرانو څـۀ کـمے نۀ وۀ او د هغۀ زوے سرور مونږ سره وۀ.ليکن سره د دې چې زما ترۀ په ما مهربان نۀ وۀ ولې د هـغـۀ د زوي پـه نسبت هـغـه زما زيات خوښ وۀ ځکه چې د هغۀ د ټولې بيمارۍ په عـرصـه کښـې چـې څـلـويښتـو ورځـې پورې وه، سرور صرف دوه ځله د خپل پلار تپوس له راغلے وۀ او نور ټول وخت به ئې خپل کار کولو.

يوه ورځې زما ترۀ له چا خرماني راوړې.ليکن چونکه يو څو ورځې شوې وے چې هغه تبې پريښې وۀ، ما هغۀ ته منت وکړو چې ناپوهه کيږه مه او دا مۀ خوره .هغۀ زما خبره ونۀ منله او خـرمـانـۍ ئې وخـوړې. مـا هـغـۀ تـه ووئـيـل چـې ما شپه او ورځ ستا تيمارداري کړې ده او مـاسـوائے د يـو څـو ورسـتـنـو ورځـو نـه چې څـۀ لږ ارام مې کړے دے،زۀ ډېر کم اودۀ شوے يم.ليـکـن کـۀ تـۀ بيـا ناجوړه شوے نو زۀ به بيا ستا تيمارداري نۀ کوم. سره زما د خبرو هغۀ د خـرمـانـو رکيبـۍ خلاصه کړه او ما چې دا خيال وکړو چې زما د ټول ژوند خدمات زما په ترۀ بـانـدې هسې تـوئ شول نو زۀ ډېر خفه شوم ځکه چې ما اوس د هغۀ د ارام دپاره د خپلې وسلې پـه خرڅولو ګوتې پورې کړې وے .له دې کبله ما د هغۀ نه تربيت عيسیٰ خان ته د تلو اجازت وغـوښتـو . هغۀ ما ته اجازت راکړو او ما په يوه شپه کښې د دوؤ ورځو لار ووهله ځکه چې ما سره نـۀ د سـړو او نـۀ د اسـونـو د خـوراکـے دپاره پيسه پاتې شوې وه د دې نه علاوه د ورځې ګـرمـي ډيـره سـخـتـه وه. زۀ هـلـتـه پـه يو کور کښې ډيره شوم چې يو شهزاده به د ځان د پاره استـعـمـالـولـواو هـغه دا وخت تهران ته تلے وۀ او يو بل کور مې د ترۀ د استوګنې دپاره تيار

کړو.

په دې ځای کښې د هرات یو سوداګر چې د هغهٔ نوم قاضي حسن علي وهٔ او دلته د یو څو کالو نه وسیدو ماله راغې او ماته ئ ووې چې ستا څومره روپی پکار وي نو زهٔ در کولے شم او راتـه ئ ووې چـې مـا څخه یو لک کابلی روپی خپلې شته او دوه درې لکه ایرانی روپی ما سـره د تـجـارتـي امورو دپاره امانت پرتې دي. ما په جواب کښې ووې چې زهٔ ستا د دې ست ډیر مشکور یم لیکن چونکې زهٔ تاله دا روپی بیا واپس کولے نشم زهٔ مجبور یم چې د دې روپو د اخستـو نـه انکار وکړم کهٔ چرې تهٔ زما د قیام په دوران کښې زما سړو او اوښانو له خوراک ورکـړې نو زهٔ به ئ په ډیره شکریه سره منظور کړم. زما ترهٔ شپږ ورځې پس راورسیدو او دې قـاضـي د هغهٔ د اخراجاتو ذمه واري واخسته او چونکې زمونږ د سړو ټولې جامې شلیدلے وے او د هـغـوي زیـنونه او سامان بیکاره شوے وهٔ هغهٔ ووې چې دا به هم زهٔ تاسو له نوې کړم. ما د خپـلـو سـړو دپـاره خـو د دې څیزونو د اخستو نه انکار وکړو لیکن زما ترهٔ د خپلو سړو دپاره مـنـظور کړل. حقیقت دا دے چې دې سړي زمونږه دومره خدمت وکړو چې تر څو پورې زهٔ ژونـدے یـم نـو زهٔ د هغهٔ د مهربانی پوره عوض نشم ورکولے. د یو معمولي سړي دپاره دومره لوے اخراجات برداشت کول ډیر لوے زړهٔ غواړي.

چـونـکـې زمـا تـرهٔ د خپـل خـوراک بابت ډیر لا پروا وهٔ هغه بیا ناجوړه شو او په دې عـرصه کښې ما لس ورځې او شپې د هغهٔ تیمارداري وکړه. یو څو ورځې پس د مشهد ګورنر چـې زمونږ د راتلو نه خبر شو نو هغهٔ د شاه د هدایاتو مطابق زما د ترهٔ دپاره یو تخت روان سره د څـلـیریشتو قچرو راواستولو. هغهٔ ولیکل چې ما ستا د ترهٔ د بیماری اوریدلي دي د دې دپاره مـا دا تـخـت روان درولیـږلـو چې مشهد ته ئ راورسوم. مونږ د هغهٔ دا خاطر منظور کړو او د میاشتـې په اخر کښې مونږ مشهد ته روان شو. تر دې وخته پورې په مونږ باندې د قاضي اویا زره قـرانـه قرض شول. (قران یوه ایراني سکه ده چې شپږ انې قیمت لري) زما ترهٔ شپیتهٔ زره د هـغهٔ نه قرض کړي وو او ما لس زره. دا نیک سړے مونږ سره سلام تدائي نومے یو غرهٔ پورې چـې تـربیت عیسیٰ نه د پنځو ورځو په مزل دے ملګرے لاړو. خلقو وئیل چې د دې ځاے نه د اتـم امـام رضـا روضـه مبـارکـه پـه نظر راتلے شي. زما زړهٔ ته ډیر تسکین وشو چې ما د خداے پـاک نـور پـه هغه روضه باندې ځلیدو ولیدو. او د قرآن لوستو نه وروستو مې د خداے نه دعا وغـوښتـه. د دې ځـاے نـه چې مونږ رخصت شو نو مونږ شپږ عربي اسونه چې جواهرات پرې پراتهٔ وو او باقاعده زینونه او قیزې پرې پرتې وے او دوه ګاډر ئ راښکل مخې له راغلهٔ. یو زر سوارهٔ هغوي پسې روان وو او دا د روضې مبارکې نوکران وو. دا ټول د شاه د ترهٔ د زوي مال وهٔ او مـونـږه پـه ډیر شان و شوکت سره محل ته بوتلې شو او مونږ ته ووئیلې شو چې مونږ به دلتـه خپـلـه استـوګنه کوؤ. درې ورځې پورې مونږ د امام صاحب میلمانهٔ وو او د هغې نه پس

مونږ شاهي ميلمانهٔ شو.. چونکې د شاه د ترهٔ زوي د ترکمانانو برخلاف جنګ له تلے وهٔ په دې سبب هغه موجود نهٔ وهٔ. ولې هغه لس ورځې پس راغے او زما ترهٔ د هغهٔ زوے سرور او زهٔ او زمونږ يو شو نوکران ئ ډوډی له مدعو کړو او هغوي ډېر د دوستئ خيالات مونږ ته ظاهر کړل.

په بله ورځ د شاه ترهٔ حمزه مرزا پخپله زمونږ ليدو له راغے او د هغهٔ سره ملاقات کولو نه پس زهٔ روضې ته لاړم چې خپل تندے د هغې په خاوره کښېږدم چې په سترګو کښې مې نُور او زړهٔ ته مې تسکين حاصل شي. د شاه وزير چې په روضه کښې د جارو وهلو کار کوي زهٔ خپل کور ته مدعو کړم. ما دا دعوت په ډېرې خوشحالئ منظور کړو. زهٔ په مشهد کښې پنځلس ورځې پاتې شوم او په دې عرصه کښې زما لږه شان تبه وشوه ليکن زهٔ خدائے پاک جوړ کړم او چې ما د بادشاه ترهٔ سره دويم ملاقات کولو نو ما د هغهٔ نه سوال وکړو چې ماته د عزباتاجان او د ارګنج په لاره ترکستان ته د تلو اجازت راکړه. ما د هغهٔ نه يو رهبر هم وغوښتو چې ما سره د ايران تر سرحد پورې د دره ګاز نومے يو ځائے ته چې علي يار خان پکښې ګورنر وهٔ لاړ شي. په جواب کښې ماته ووئيلې شو چې زما درخواست قبل د دې نه چې منظور شي بادشاه ته به پيش کيږي او دا درخواست به په تار کښې مونږ هغهٔ ته ليږو. د دوؤ ورځو د انتظار نه پس شهزاده ماله راغلو او چې چيلم او چائے ئ وڅښل نو ماته ئ ووې چې ما د حکومت ميرمنشي ته تار ورکړے دے او هغهٔ د شاه منظوري غوښتې ده. وړومبے د دې نه چې بادشاه درخواست منظور کړي هغه تاته سوال کوي چې تهٔ راشه او ما په تهران کښې وګوره. نو کهٔ چرې تهٔ د دې نه پس بيا هم ترکستان ته تلل غواړې نو بادشاه به درته اجازت درکړي. د دې په جواب کښې ما ووئيل چې دا به ښه وي چې زهٔ في الحال شاه له لاړ شم. ولې چې چرې ما خپله منشا بل ځائے نشوه پوره کولے (يعني د افغانستان د خلاصولو منشا) نو زهٔ به بيا واپس شم او هغهٔ سره به وګورم. ماته دا څهٔ ډېره ښه خبره نهٔ معلوميده چې دومره لوے بادشاه لکه شاه ايران د کتلو نه پس زهٔ د هغهٔ نه رخصت شم او بل حکومت ته د امداد درخواست وکړم. په دې صورت کښې به نور خلق دا خيال کوي چې بادشاه ما سره د امداد کولو نه انکار وکړو او دا به يو قسم د هغهٔ بې عزتي وي. دې نوکر زما په خبره باندې د غور کولو دپاره د دوؤ ورځو مهلت وغوښتو. د دې ميعاد نه پس ماته ووئيلې شو چې د بادشاه دا خوښه ده چې تهٔ هغهٔ سره وګورې مګر کهٔ چرې تهٔ ليدل نهٔ غواړې نو تهٔ هر کله چې ستا خوښه وي ترکستان ته تلے شے. خو په هر صورت شاه به تاته د خپل زوي په شان نظر کوي. او تهٔ به ايران داسې ګڼې لکه چې ستا خپل کور وي. ما د هغهٔ ټولو مهربانو چې کومې هغهٔ ما سره کړې وے د شهزاده د نوکر ډېره شکريه ادا کړه او ما هغهٔ ته منت وکړو چې ما دپاره د شاه د نظر عنايت حاصلولو کوشش وکړه. هغهٔ ماله د شهزاده د طرف نه

لس سوارهٔ او یو مشر او یوه چیتې د علي یار خان په نوم راکړه. د شپږو ورځو د مزل نه پس علي یار خان د دره ګاز نه بهر یوه باغیچه چې ډیره صحت افزا او د ارام ځایے وهٔ راکړه. دې سرې په داسې ګرمجوشۍ ماته هرکلے ووئیلو چې سرې به دا خیال کولو چې ګنې دې زما زوړ اشنا دے. زهٔ ئې یوه میاشت ځان سره وساتلم. په دې عرصه کښې هغهٔ زما د ځان د سلامتۍ دپاره د ترکمانانو خلقو نه ضمانت وغوښتو ځکه چې هغهٔ وئیل چې دا خلق رهزنان دي.

هم په دې ورځو کښې څهٔ ترکمان سوداګر د تجارتي سامان نه ډک یو زر اوښانو سره درهٔ ګاز ته د تجارت دپاره راغلل او دا خلق ئې په طور د ضمانت ونیول. زهٔ د تاجان دریو سردارانو سره چې د یو نوم ازبیک وهٔ د بل عزیز او د دریم نوم ارتک وهٔ، روان شوم. دې سردارانو به تر ارګن پورې ماته لار ښودله. د عشق اباد پورې خان پخپله پنځلس سوه سورو سره ما سره جلب وکړو په لاره باندې د شولو په پټو کښې ډیر زیات ښکار وهٔ او چونکې مونږ سره ټوپکونه او ښهٔ اسونه وو مونږ به دوه درې ګینټې روزانه په دې طریقه خپل ځان مشغولولو.

چې د عشق اباد نه تیر شو نو خان اجازت وغوښتو او یو څو سوارهٔ ئې ما سره د دې غرض دپاره پریښودل چې هغوي زما په خیریت سره د رسیدو خبر هغهٔ ته ورسوي. مونږه ټوله شپه سوارهٔ لاړو او بل سحر هغې ځنګل ته ورسیدو چې د هرات د رودونو په غاړه پروت دے. د دې رودونو په غاړه خربوزې او هندوانې وے د دې ځایے د خلقو دا رواج دے چې هرکله د دې هندوانو او خربوزو د پخیدو وخت شي نو هغوي په خپلو پټو کښې دیره شي او بل هیڅ څیز بغیر د دې هندوانو او خربوزو نهٔ خوري. د هغوي اسونه شنهٔ شرغشي خوري ځکه چې بل قسم واښهٔ چرته بیاموندې نشي. بله ورځ مونږ تاجان ته ورسیدو او دې ځنګلیانو خلقو سره تر پنځو ورځو پورې دیره شو. د دې نه زمونږ یو غرض دا وهٔ چې د خرڅ خوراک سامان جمع کړو بل دا چې زهٔ ارام وکړم ځکه چې اس په لته وهلے وم.

په شپږمه ورځ مونږ ارګنج ته روان شو په هغه دریو سردارانو کښې چې ما سره ملګري وهٔ یو خو خپل وطن ته واپس لاړو او نور دوه ازبیک او عزیز ما سره وړاندې روان شو. مونږ ټوله شپه د بلې ورځې د لس بجې سحره پورې مزل وکړو او یو کوهي ته راورسیدو چې د هغې اوبهٔ ډیرې ترخې دي. مونږه هلته دوه ورځې پاتې شو او بیا غرمې ته روان شو او تر بلې ورځې پورې مې مزل وکړو او صرف دومره حصار شوي وو چې اسونو له مو دانه ورکړه په څلورمه ورځ قریب لس بجې د شپې مونږ یو بل کوهي له راغلو چې د هغې ځایے اوبهٔ د وړوصبي نه زیاتې ترخې او خیرنې وے. لیکن مونږ د ناکام نه وڅښلې او چونکې زمونږ اسونه هم نورمخکښې نشو تلے په دې وجه مونږ هلته شپږ ورځې دیره شو د دې دپاره

چې اسونه پوره پوره ارام وکړي. د دې نه پس مونږه د شپې خپل مزل بيا شروع کړو او د ورځې په ګرمۍ کښې به اوده کيدو تر دې پورې چې د ترکمان قبيلې يوه قافله مونږ ته مخې له راغله او هغوي دا خيال وکړو چې دا ايرانيان دي او په مونږ حمله کوي په دې وجه هغوي ځان پټ کړو. ما له دلته د دې خبرې ذکر کول پکار دي چې ايرانيان او ترکمانيان په خپلو کښې دشمنانان دي اګر چې هغوي دواړه مسلمانان دي مګر چونکې د هغوي مليان د شيطان بندګان دي هغوي خپلو خلقو ته د يو بل د قتلولو وينا کوي. دا د سخت جهالت خبره ده. خدائے پاک فرمائي چې ټول مؤمنان ورونه دي او د يو بل اجزاء دي او اګرچې دا دواړه قبيلې ځان ته مسلمانان وائي ولې هغوي د جهالت په سبب يو بل سره د مشرکانو سلوک کوي. دغه شان کفار په رښتينو مؤمنانو برے بياوموي اواصل وجه ئ دا ده چې مسلمانان په خپله کښې سره بې اتفاقه دي. اسلام ته هيڅ ګناه نشته دا مونږه يو چې د عيبونو نه ډک يو. مونږ د يو څو اکه دوکه ترکمانانو نه تپوس وکړو چې آيا دلته په خواوشا کښې چرته نور کوهيان شته هغوي په جواب کښې ووې چې کۀ مونږ هم په دې قدم چې په کوم روان يو لاړ شو نو د سحر د ځيرې نه به وړومبے يو کوهے مخې ته راشي. مونږ تر هغې پورې مزل وکړو چې نمر ډير سخت شو او زمونږ اسونه نور مخکښې نشو تلے ليکن مونږ د کوهي نام و نشان ونۀ ليدو او زمونږ ژبې د تندې نه وچې کلکې شوې. او زمونږ د اسونو ژبې د لرګي پشان کلکې شوې. ما په هغوي کښې د يو څو ژبې پريکړې ليکن په هغوي کښې وينه نۀ وه. او ما په خلۀ کښې نيمو وچوپلو او خپله ژبه مې د اس ژبې سره ومښله ولې هيڅ لوندوالے پکښې پيدا نشو.

د دې بې آبۍ نه زۀ په دې نتيجه ورسيدم چې دوزخ د يو سړي په خپل بدن کښې دے ځکه چې بې اوبو بنيادم دا شان ګرم شي لکه د اور پشان. مونږ تر مابنامه پورې مزل وکړو او يو کوهي ته راورسيدو ليکن صرف څلور کسان او نور په لاره وروستو وغورځيدل چې لږې اوبۀ مو وڅښلې نو ما د خپلو پاتې شوو نوکرانو په حال فکر وکړو او بې اختياره مې د هغوي په قسمت وژړل. ما وليدل چې يو اس چې ماله د عشق اباد خلقو راکړے وۀ دومره ستومانه نۀ دے لکه چې نور وو. ما په هغۀ دوه بوقې اوبۀ کښېښودې او يو سړے مې په هغه اس وليږلو چې لاړ شه او زما ملګري بياومومه ما هغۀ ته ووې چې د اس لار مۀ پريږده او هغۀ له مې يو کمپاس هم ورکړو چې کۀ په شک کښې پريوځې په دې باندې لار معلوموه هغۀ زما هغه ټول سړې بياموندل. چې څوک د اسونو نه پريوتي وو او د تندې په وجه پکښې دومره طاقت نۀ وۀ پاتې شوے چې بيا پاڅيدلے وے. هغۀ د هر سړي په خلۀ کښې لږې لږې اوبۀ واچولې تر دې چې هغوي په هوش کښې راغلل او په څۀ لږ وخت کښې ټول ئ ماله واپس راوستل.

مونږ په دې کوهي اووۀ ورځې پاتې شو تر دې چې د ترکمانو هغه قافله بيا راغله چې

د کوم ما ورومبے ذکر کړے دے او چې ئ واوریدل چې زۀ څوک یم نو هغوي کښې یو څو کسان راغلل او د دې خبرې معافي ئ وغوښته چې مونږ تاسو قصداً په غلطه لار سم کړے وے چې د تندې نه مړۀ شئ ځکه چې زمونږ دا خیال وۀ چې تاسو ایرانیان یئ . ما سره زما د خوراک ذخیره هم دا وخت ختمه شوې وه نو هغوي د څلورو ورځو خوراک مونږ ته راکړو او د درې ورځو خوراک مې ترې نور په بیعه واخستو . هغوي بل سحر له رخصت شو لیکن مونږ هلته درې ورځې نور هم پاتې شو . د خیوا ښار د دې کوهي نه د پنځو ورځو په مزل لرې وۀ.

مونږ دغې طرف ته بیا روان شو او د ښار نه بهر د یو څو ونو لاندې دیره شو د هغه ځاے نه ما یو څو سړي د خوراک د سامان اخستو دپاره ولیږل خان خیوا زما د نوکرانو نه تپوس وکړو چې دا خوراک د چا دپاره اخلئ او هرکله چې هغوي ورته په جواب کښې ووې چې د خپل مالک سردار عبدالرحمٰن دپاره چې د مرحوم امیر افضل زوے دے او د دوست محمد خان نمسے دے نو هغۀ ماله یو وزیر راولیږلو اوماته ئ ووئیل چې مونږ ته دا ډیره نامناسبه ښکاري چې تۀ دې داسې بې ارامه ځاے کښې شپه تیره کړې. هغۀ ډیر زور ولګولو چې مونږه ښار ته بوځي ځکه چې هغوي مونږ ټولو دپاره یو څو ښکلي کورونه تیار کړي وو او په هغوي کښې هغۀ مونږ ته په ډیرې ګرمجوشي هرکلے ووئیلو.

د دوؤ ورځو د میلمستیا نه پس د خیوا او د ارګنج خان ما له خپل وزیر راواستولو چې زۀ ستا لیدو له راځم ما ورته ووئیل چې زۀ یو اجنبي سړے یم او په خیوا کښې زما څۀ اهمیت نشته نو دا به زیاته موزون وي چې کۀ چرې زۀ تاله درشم او بیا زۀ د هغۀ محل ته سور لاړم چې زۀ هلته ورسیدم نو ما شپیتۀ توپې او د توپو ګاډي ولیدل لیکن ټول توپچیان ئ حبشیان وو . ما ورومبے دومره حبشیان یو ځاے نۀ وو لیدلي هغوي د پنځوسو توپو سلامي ماته وکړه. او خان زما د استقبال دپاره بهر ته راووتو . زۀ د اس نه کوز شوم او مونږ روغ جوړ وکړل او یو تر بله لاس ورکړي د دربار کمرې ته ورددننه شو هغه وخت ما له ترکي ژبه نۀ راتله د دې دپاره خان یو مترجم مقرر کړو . چې زمونږه ګفتګو یو بل ته ترجمه کړي. مونږ تر دوؤ ګینټو په خپلو کښې خبرې وکړې او هغۀ ماته ووئیل چې زۀ تا دا شان ګڼم لکه چې زما مشر ورور ئ ځکه چې زما پلار محمد امین هغه وخت ستا د پلار ډیر زیات دوست وۀ څۀ وخت چې هغه په بلخ کښې وسیدو او زۀ دخداے پاک شکر کوم چې زمونږه په خپلو کښې ملاقات وشو . هغۀ ما ته د اوو ښارونو د حکومت نه د دوؤ ښارونو حکومت پیش کړو او راته ئ ووئیل چې هرکله تۀ بلخ ته تلے نو زۀ به تاله یو لک سوارۀ او پیاده درکړم، چې هغه ښار تا دپاره فتح کړي او مونږه بدستور دوستان او ګاونډیان پاتې شو . ما د هغۀ د دې فیاضۍ ډیره شکریه ادا کړه او ورته مې ووئیل چې زۀ به درله په یو څو ورځو کښې جواب درکړم او د

دوستانه نصيحت په طريقه به يو ځو دا شان خبرې ورته وښيم چې تا دپاره به سودمندې وي
بيا ما د هغهٔ اجازت واخستو او د هغهٔ نوکر چې دا وخت ئ زما رهبري کوله ماته ووئيل چې
خان ستاسو د استوګنې دپاره خپل کور انتظام کړے دے او د دې دپاره به ستا سرې د هغه
ځاے په باغ کښې وي دا باغ او کور به د ښار نه قريباً دوه سوه قدمه لرې وهٔ. او په هغې کښې
ډير ښکلي مکانات وو.

قريباً دوه ګينټې پس د خان خزانچي راغے او ماته ئ ووئيل زما مالک ماته وئيلي دي
چې تر دوؤ لکو پونډو پورې هر څومره روپۍ چې ستا پکار وي نو زهٔ به ئ تاله درکوم وزير
هم ووئيل چې هو دا خبره ټيک ده. ما ورته ووې چې خداے دې ستا خان سره ښهٔ وکړي چې
هغه داسې نيک سړے دے. ما سره دومره الفاظ نشته چې زهٔ د هغهٔ شکريه ادا کړم. زهٔ به د
دوؤ لکو پونډو سره څهٔ کوم. زما روزانه اخراجات ديرش قرانه دي او په بله ورځ خزانچي ما
له يو زر طلا راوړل. او وې وئيل چې خان ماته وئيلي دي هره ورځ دغه رقم ورسوه. اخر ما
هغه رقم منظور کړو او هغه سړي ته مې ووئيل چې دا روپۍ زما سړي له ورکړه. هره ورځ به
هغهٔ دا رقم راوړو اګرچې زما روزانه اخراجات لکه چې څنګه ما وړومبے وئيلي وو صرف
ديرش قرانه وو.

پنځهٔ ورځې پس وزير راغے او ما نه ئ دخان د تجاويزو متعلق او د هغې دوستانه
نصيحت متعلق چې ما هغهٔ ته د پيش کولو وعده کړې وه جواب وغوښتو ما ورته په جواب
کښې ووې چې ماته دا ښهٔ ښکاري چې (کهٔ د افسرانو دې خبرې سره اتفاق وي) خان ما
روس ته سره د خپلو يو څو اعتباري نوکرانو په طور د سفير وليږي چې زهٔ ستا او د روسي
حکومت ترمنځه د فيصلې کولو انتظام وکړم کهٔ نهٔ وي نو زهٔ دا د سترګو په وړاندې وينم چې
يوه ورځ به روسي فوځ د ارګنج خوا ته راورسي او دا لږ شان سړي چې تاسو د خپل ځان د
حفاظت دپاره ساتلي دي نو دا د يو دومره لوے حکومت برخلاف د جنګ کولو طاقت نهٔ
لري. خان خپلو مشيرانو سره زما د دې صلاح د نيکۍ متعلق جرګه وکړه ليکن چونکې دې
خلقو ته د يو لوے قوم د طاقت تجربه نهٔ وه په دې وجه هغوي زما خبرې سره اتفاق ونکړو او
وې وئيل چې روسيان به ټول تباه شي. کهٔ هغوي د ارګنج خوا ته رانزدې شول. وزير ماله په
واپسۍ کښې خبر راوړو او ماته ئ ووئيل چې خان او د هغهٔ يو څو افسرانو خو ستا تجويز
خوښ کړو ليکن نورو خلقودغه شان صلاح ورکړه لکه چې څنګه ما بيان وکړو. ما په جواب
کښې ووئيل چې کهٔ چرې دا خلق دومره جاهلان دي نو زهٔ په هغوي کښې نور نهٔ ايساريږم په
دې وزير ماته دا خبره ښکاره کړه چې خان غواړي چې تاله خپله لور درکړي د دې دپاره چې
څهٔ وخت نه پس خلق ستا نصيحت منظور کړي.

ما هغوي ته په جواب کښې ووئيل چې په لږه موده کښې به خلق ما سره حسد شروع

کړي او زما دښمنان به شي کۀ چرې ما د خان په دوؤ ښارونو د حکومت کولو پیشکش منظور کړو . او په دې وجه دا زما دپاره محفوظ خبره نۀ ده چې زۀ په هغوي کښې پاتې شم. د دې دپاره زۀ بخارا ته تلل غواړم. وزير زما په دې تجويز ډير غمژن شو او زۀ ئې خبردار کړم چې شاه بخارا ستا هغې سړو له چې بخارا ته تلي وو معمولي خوراک هم نۀ وؤ ورکړے او ستا د ترۀ زوے ئې شاهي قيدي کړے وؤ. د دې دپاره هغۀ ماته نصيحت وکړو چې تۀ د خپل وطن نه د خپل کور خلق راوغواړه ليکن ما په تلو اصرار وکړو او ورته مې ووئيل چې زما هلته کار دے او ورته مې منت وکړو چې ما دپاره د خان نه اجازت وغواړه وزير زما نه رخصت شو او وعده ئې وکړه چې سبا له به درله جواب راوړم. چنانچه هغه راغے او وې وئيل چې خان زما په جدايي ډير خفه کيږي ولې کۀ چرې تۀ اصرار کوے نو هغه به مجبوراً تاته د تلو اجازت درکوي. ليکن خان اميد کوي چې تۀ به دوه ورځې نور انتظار وکړې چې هغه ستا د سفر دپاره پوره انتظام وکړي.

په دريمه ورځ هغه ما له يو نيم سل اوښان سره د خرڅ خوراک د سامان، قالينونه او خيمې راکړې. او هر کله چې زۀ د هغۀ نه د رخصت اخستو دپاره لاړم نو هغۀ زما په تلو ډير د افسوس اظهار وکړو.

د پنځو ورځو د مزل نه پس زۀ دريائے آمو ته ورسيدم او د ګز او شهراب خان د سرحد نه پورې وتم دا دواړه مقامونه اوس د روسي حکومت د لاندې دي . د هغې ځاے نه ما اووۀ ورځې مزل وکړو او قراقل ته ورسيدم چې د بخارا د ملحقاتو نه دے زما نوکران چې هلته موجود وو او زما د ترۀ زوے اسحاق ټول زما په رسيدو خوشحاله شو او ماته ئې د خپلې خوشنودۍ د اظهار چيټې وليکلې. په دريمه ورځ زۀ بخارا ته ورسيدم ... معلومه شوه چې بادشاه مير سراب بيک سره د جنګ کولو دپاره د روسي حکومت د هداياتو لاندې حصار او قولاب ته تلے دے ځکه چې مير د روسي باجګزارۍ منلو ته تيار نۀ وؤ. چونکې زما بادشاه سره دوستي شان وه ما هغۀ ته د خپل رسيدو تحريري اطلاع ورکړه او هغۀ نه مې تپوس وکړو چې زۀ ستا تر واپسۍ پورې په بخارا کښې پاتې شم او کۀ حصار ته درشم. ځکه چې زۀ عنقريب سمرقند ته ځان رسول غواړم. دې بې انضافه بادشاه ماته وليکل چې زما کتو له دلته راشه ما هغه طلا چې خان خيوا ما له راکړې وے راوويستې او د سورلۍ اسونه او نور ضروريات مې واخستل ما سره هغه ټول اوښان هم وو کوم چې هغۀ ماته بخښلي وو . او په دې رنګ ما د خپل سفر دپاره ټول ضروريات تيار کړل. (سره د پنځو سوؤ سورو) زۀ حصار ته روان شوم. (او هغه ټول مريونه مې ازاد کړل کوم چې خان ماله پيشکش راکړي وو.) او هلته لس ورځې پس ورسيدم. حصار ته په لاره کښې ما يو لوړ مقام وليدو چې د بادشاه د خيمو دپاره تيار شوے وۀ. دا ځاے د وينو نه لتاړ وۀ . وروميے ما دا خيال وکړو چې شايد بادشاه په دې نوي

ملک باندې د فتحې حاصلولو په اعزاز کښې غوا د خيرات دپاره حلالې کړې دي او ما تپوس وکړو چې دا غوا ئ لږې لږې ولې نهٔ حلالولې. د کلي خلقو اسويلے وکړو او وې وئيل چې دا د سړو وينه ده دا د غواؤ نهٔ ده. ... دا شان معلوميده چې لس پنځلس ورځې وړومبے د بادشاه خيمه دلته لګيدلے وه. او چې د هرات د فتح کيدو خبر راغے او يو زر قيديان بادشاه له راوستې شول هغهٔ سمدستي حکم وکړو چې زما په مخکښې د دې سړو مرى پريکړئ ما د ظلم دا خبره چې واوريده نو صدمه راته ورسيده او وهٔ مې وئيل دا خلق به ګناهګار وو ولې قيديان څوک نهٔ وژني. خلقو په جواب کښې ووئيل چې بادشاه سوونه سړي بې قصوره او بغير د مقدمې د سماعت نه قتل کړي دي. ما چې دا واوريدل نو ډير حيران شوم او په زړهٔ کښې مې فکر وکړو چې په ترکستان باندې د روسيانو د فتح وجه دا ده چې مسلمانانو حاکمانو خدائے او د خدائے دين هير کړے دے. دوئ مسلمانانو نه غلامان جوړوي او بنيادم بې ګناه قتلوي. چې د خدائے پاک مخلوق دے. دا بادشاه د خدائے او د خدائے د پيغمبر صلي الله عليه وسلم د قانون هيڅ پروا نهٔ کوي او ملميان چې د دې قوانينو محافظان او سبق ورکونکي دي د دې قوانينو د خلاف ورزئ هيڅ خيال نهٔ ساتي. هرکله چې ما وليدل چې د بخارا غوندې ښار چې د مذهب په پابندئ کښې يو ډير لوے نوم لري هغه د محمد صلي الله عليه ولسم د عقيدې بر خلاف دا شان کارونه کوي نو ډيرمايوسه شوم ما د مسلمانانو په لاپرواهئ ډير افسوس وکړو چې دوئ پخپل غرور کښې داسې بدمسته دي. چې کفار د هغوي د جهالت او باهمي دشمنئ نه هميش فائده وچتوي. ما د دې بې ګناه خلقو په قتل باندې وژړل او يوڅو سوارهٔ مې مقرر کړل چې د دوئ په وينه باندې خاوره واچوي او د قبرونو شکلونه پرې جوړ کړي.

يوه شپه مې په خفګان او په مايوسئ کښې دا شان تيره کړه نو بيا په حصار کښې داخل شوم چې هلته بادشاه يو زر سوارهٔ د يو څو افسرانو د لاندې زما د استقبال دپاره راليږلي وو. زهٔ په يو داسې کور کښې ديره شوم چې کوم ما دپاره تيار شوے وهٔ درې ورځې پس د بادشاه نوکر ما له دعوت راوړو او زهٔ د هغهٔ ليدو له لاړم د هغې نه پس زهٔ واپس شوم او هغهٔ ماله لس زره تنګې د تيله دارې کپړې يو څو تانونو سره راوليږلې.

زهٔ په حصار کښې يو څو ورځې پاتې شوم او بيا سمرقند ته روان شوم روسي ګورنر ماته په ډيرې مهربانئ هرکلے ووئيلو او ماله او زما نوکرانو له ئ د قيام دپاره کورونه راکړل. او د کوربه په حيثيت ئ مونږ ته هرقسم توجه کوله. لږه موده پس د ترکستان وائسرائے دعوت راکړو چې ما په تاشقند کښې وګوره چنانچه د سمرقند حکومت زما د سفر دپاره ټول ضروري انتظامات وکړل ما سره په ډيرې مهربانئ هغوي پيش راغلل. په بله ورځ ماله وائسرائے هغهٔ سره د ليدو اجازت راکړو. هغهٔ په ډيرې مهربانئ ماته هرکلے ووې او واپسې

ماله هم ملاقات له راغې. د هغې نه پس هغهٔ ما سره خبرو اترو کولو دپاره دعوت راکړو. هغه ځاے ما په دلچسپي سره د يورپ د خلقو عادتونه وليدل. هغوي خپل ميلمانهٔ په يو لوے هال کښې رادننه کوي او ميلمانهٔ د يوې کمرې نه بلې کمرې ته د خبرو اترو کولو يا د تماکو څښلو يا د ميوې خوړلو دپاره ځي راځي. تر دوؤ د غرمې پورې هم دغه شان کار روان وهٔ او د هغې نه پس مونږ ټول خپلو خپلو کورونو ته لاړو په بله ورځ زما د ملاقات په بدل کښې هغه راغے او زهٔ د خپل کور تردروازې پورې د هغهٔ استقبال له لاړم د يو بل د خيرخيريت د تپوس کولو نه پس ما هغهٔ له څهٔ تحفې ورکړې چې په هغې کښې يو د جواهراتو د دستې يوه توره وه شپږ ټکړې د قيمتي کشميري کپړې وے. او دوه تانونه د تيله دارې کپړې وو هغهٔ ما سره تر دوؤ گينټو پورې کښيناستو او بيا رخصت شو. په بله ورځ جنرل علي خانوي يو زهٔ د غرمې د ډوډۍ دپاره مدعو کړم او مونږه ورځ ډيره په خوږه طريقه سره تيره کړه. هر څو ورځې چې زهٔ هلته وم نو نورو جرنيلانو زهٔ خپلو کورونو ته مدعو کړم.

په دې منځکښې د روسيانو لوے اختر چې هغوي ورته کرسمس وائي راغے په دغه ورځ وائسراے ما له خپل گاډے راواستولو او د خپل سر کاتب په لاس ئې ماته خپل کور ته د راتللو دعوت راکړو. مونږه دواړه يو ځاے سوارهٔ لاړو او وائسراے حسب معمول پياده ماله مخې له راغلو او زهٔ ئې هم هغه هال له بوتلم چې کوم کښې ورومبے د ميلمنو استقبال شوے وهٔ. په دغه ځاے کښې ټول افسران د هغوي ښځې او لوڼه موجودې وے هلته د خوراک هر يو څيز حلال او حرام دواړه موجود وو دې يارانو تر نيمې شپې پورې د خوراک نه بس نهٔ کړل. او د هغې نه پس هغوي د يو بل په ښکلولو گوتې پورې کړې او يو بل ته ئې کرسټوز کرسټوز ووئيلو.

د هغې نه پس هغوي زمونږ د کوربه نه رخصت واخستو او خپلو خپلو کورونو ته لاړل تر دريو ورځو پورې دا رسومات جاري وو د هغې نه پس وائسراے بيا خپل سرکاتب خپل گاډي سره راواستولو او دعوت ئې راکړو چې زمونږ د فوځ پريډ وگوره او د پياده او د رسالې او د توپچيانو سلامي وشوه او پريډ شروع شو د پريډ ټول انتظام ډير ښهٔ وهٔ او په اخر کښې ئې يو مصنوعي سرنگ والوځولو په بله ورځ سکتر بياراغے او وې وئيل چې لاړ بيا تا ليدل غواړي او مونږه ملاقات وکړو د چائے څښلو نه پس هغهٔ ماته ووئيل چې زار اعظم په تار کښې ستا د خير خيريت تپوس کړے دے. د دې ما د هغهٔ شکريه ادا کړه هغهٔ بيا ماته ووئيل چې شهنشاه از روے مهرباني تاته دعوت درکړے دے چې تهٔ پيټرزبرگ ته هغهٔ سره د ملاقات دپاره لاړ شه. د دې دپاره چې هغه تاته هرقسم دوستانه طبع تسلي درکړي. ما هغهٔ ته تسلي ورکړه چې زهٔ د زار ملک ته دا شان گورم لکه چې هغه زما د امن ځاے وي. او زهٔ تر دې پورې د دې غرض دپاره راغلے يم چې زهٔ هغهٔ ته د هغه ټولو اميدونو خلاصه ښکاره کړم

چې د کوم د کامیابۍ دپاره زۀ دعوت کوم. لارډ زما نه تپوس وکړو چې تۀ پیټرزبرګ ته تلل غواړې؟ ما ورته ووئیل چې زۀ به سبا له جواب درکړم. ما خپلو اعتباریانو نوکرانو سره په دې سفر باندې د تلو متعلق جرګه وکړه هغوي بالاتفاق ووئیل چې مونږ تا دې تلو ته نۀ پرېږدو ځکه چې مونږ تا نه بغیر هیڅ کار نشو کولے ما هغوي ته ووئیل چې په روس کښې زما په شان ډیر شړونکي شته لیکن زار هیچا ته هم هغۀ سره د ملاقات کولو دعوت نۀ دے ورکړے له دې کبله ما له پکار دي چې زۀ د هغۀ د خواهش تعمیل وکړم لیکن اګرچې ما ډیر کوشش وکړو چې زۀ خپل نوکران دې خبرې ته مائل کړم لیکن هغوي زما د تلو سره اتفاق ونکړو. په بله ورځ زۀ د وائسرائے کتلو له لاړم او د سلام علیک د چائے څښلو او د تماکو څښلو نه پس ما هغۀ ته ووئیل چې ستا بادشاه ماته د ډیرې مهربانۍ نظر کړے دے لیکن زۀ اوس اوس د هغۀ ملک ته رارسېدلے یم او پنځۀ سوه سړي ما سره دي مونږ ټولو ډیر مزل کړے دے نو د پوره تیارۍ کولو نه پس کۀ چرې زۀ بیا مدعو شوم نو زۀ به لاړ شم. د دې په جواب کښې هغه ماته ووئیل ډیره ښه ده. زۀ به زار له تار ورکړم دوه ورځې پس سرکاتب بیا ګاډے راوستو او زۀ ئې د وائسرائے کور ته بوتلم هغۀ ماته اطلاع راکړه چې ما وزیر اعظم ته تار وکړو او زار هغۀ ته د دې خبرې اختیار ورکړو چې زار زما دې تجویز سره اتفاق کوي. او هغۀ حکم کړے دے چې ستا دپاره دې یا په سمرقند کښې یا په تاشقند کښې ستا د خوښې مطابق یو کور په بیعه واخستې شي ماله دولس سوه پنځوس روسي روپۍ زما د خرڅ دپاره هم مقرر کړې. ما په جواب کښې ووئیل چې زۀ اوس د شهنشاه د سیوري لاندې راغلے یم او هر څۀ چې هغه ماله راکوي ماته منظور دي. ماته دا هم ووئیلي شو چې زار ستا او ستا د یوڅو افسرانو تصویرونه غوښتي دي. دا خبره ما ومنله او هغوي ته مې ووئیل چې سبا له به ئې تیار کړم. د هغې نه پس ما رخصت واخستو په بله ورځ سرکاتب مونږه یو فوټوګرافر له بوتلو لیکن زما افسرانو د تصویر د اخستو نه انکار وکړو او وې وئیل هر څوک چې خپل تصویر وکاږي هغه کافر شي تر دې وخته پورې ما دا خیال کړے وۀ چې زما په سرو کښې څۀ نا څۀ عقل شته لیکن اوس ماته پته ولګیده چې هغوي کښې یو ذره عقل نشته. سر کاتب زما نه تپوس وکړو چې دې خلقو ولې تصویر رانۀ ښکلو. ما ورته په جواب کښې ووئیل چې په دوئ کښې یو کس هم افسر نۀ دے. او نۀ د قبیلې سردار دے بلکې دا زما خپل نوکران دي او په دې وجه ئې زۀ عزت کوم لیکن هغوي دومره اهمیت نۀ لري چې د بادشاه دپاره د هغوي تصویر واخستې شي هغۀ دا خیال وکړو چې زۀ ډیر هوښیار سړے یم ځکه چې هغوي وئیل چې کۀ زار زمونږ نه تپوس کړے وے چې د دوئ څۀ عهده ده نو مونږ به هغۀ ته هیڅ هم نشو وئیلے. آئنده دپاره ما بیا د خپلو نوکرانو نه دومره ډیره رائ نۀ اخسته ځکه چې هغوي دوه ځله زما تجویز نامنظور کړے وۀ او د هغوي د عقل متعلق هم زما څۀ ډیر وچت خیال نۀ وۀ. یوڅو ورځې پس بیا سرکاتب زۀ

د ګورنر يو رسم له بوتلم او بيا مونږه د تماشې او خوراکونه او نورې ميلمستياګانې تر نيمې شپې پورې وکړې وخوړې. په دې موقع ما د سمرقند د تلو اجازت وغوښتو چې خپل نوکران وګورم دا خبره زما هغهٔ منظوره کړه او د جنرل ابراموف په نوم ئ چيټهٔ راکړه.

په بله ورځ زهٔ کافمين له لاړم او د هغهٔ نه د اجازت غوښتو نه پس زهٔ سمرقند ته په هغه لار روان شوم چې په کومه لار راغلے وم. ما جنرل ابراموف سره ملاقات وکړو او هغهٔ ماته ووئيل چې مالـه وائسراے هدايات راکړي دي چې تر يو لک روبل پورې (يوه روسي سکه ده) په هر څومره قيمت چې کيږي تا دپاره يو کور او يوه باغيچه ستا د خوښې مطابق واخلم. ما ورته په جواب کښې ووئيل چې شاه بخارا سره سرکاري باغيچې شته نو زهٔ به يو نوکر د هغوي د کتو دپاره واستوم. او تاله به وروستو جواب درکړي. زما نوکر هم تر ډيرو ورځو پورې تلاش وکړواو ما هم تپوسونه وکړل اخر کار ما جنرل ته ووئيل چې د قلندر خانې دروازې سره يوه باغيچه شته چې د حکومت بخارا ملکيت دے د دې رقبه دوه ايکړه ده او په يو صحت افزا مقام کښې واقع وه چې پکښې چشمې هم وے. ما دا باغيچه د دې دپاره خوښه کړه چې جنرل د نوي ځاے په اخستو روپې تاوان نهٔ کړي بلکې يو داسې ځاے راکړي چې وړومبے نه د حکومت ملکيت وي اخر ما خپل رهائش هم هلته اختيار کړو او د خپل تربور سردار اسحاق دپاره ما يو کور په ښار کښې ګانه واخستو او بل يو کور مې د خپلو نوکرانو دپاره د سمرقند د خلقو نه واخستو.

يو څو ورځې پس زما هغه سرداران چې چا زهٔ زار ته د تلو دپاره او د هغهٔ په مخکښې د خپلې معاملې د پيش کولو دپاره نهٔ پريښودم هغوي اوس يو يو زما نه رخصت واخستو او بعضې بې رخصته زما نه لاړل سپاهيان ما سره پاتې شول او په نمک حلالی ئ زما خدمت وکړو ليکن سرداران ټول زما د تکليف باعث وو.

## پنځم باب

عبدالرحمٰن خان په دې ورځو کښې په سيل او ښکار مشغوليدل، د روسي حکومت په شهر سبز حمله کول او فتح مونډل، د امير شير علي خان د انګريزانو د فوځ نه شکست خوړل، او خپل زوي يعقوب خان ته حکومت سپارل، او پخپله د بخارا په طرف روانيدل، د روس سره د رابطې پيدا کولو کوشش او په لار کښې د دهٔ وفات کيدل، د يعقوب خان د انګريزانو سره په ډيرو ذليلو شرطونو معاهده کول، او په افغانستان کښې هغوي ته پوره پوره دخل ورکول، د روس حکومت په عبدالرحمٰن خان شکمن کيدل، او د سمرقند نه ئ تاشقند ته بلل، د عبدالرحمٰن خان په سمرقند کښې څو ورځې قيام کول او بيا د خپل باډې ګارډ سره د افغانستان په طرف کوچ کول.

په سمرقند کښې ما سره ډيرې واقعې پيښې شوې وے ليکن کهٔ چرې زهٔ هغه ټولې

ولیکم نو زما کتاب به په ختمیدو را نهٔ شي. له دې کبله زهٔ به صرف هغه واقعات لیکم چې کوم زما د خلقو دپاره سودمند وي. ما ټول ټال یوولس کاله په دې روسې ښار کښې تیر کړل اوخپلې ورځې به مې په غټ او ورکوټي ښکار کښې تیرولې. شل زما د سورلۍ اسونه او لس د باربرداری ټټوان به همیش زما په اصطبل کښې ولاړ وو. او پنځلس سوارهٔ به دوه نلیز او یو نلیز کارتوسي ټوپکونو سره زما هروخت ملګري وو. ما سره ډیر ښهٔ ښهٔ بازونه او نور مارغان هم وو دغه شان ما خپل وخت د غم غلطولو دپاره په خوشحالی کښې تیرولو ما د خپل هر یو سپاهي دپاره چې ما سره نوکران وو پنځهٔ روپۍ میاشت تنخواه مقرر کړې وه او افسرانو له مې د دې نه زیاتې د خپلې خپلې عهدې مطابق مقرر کړې. لکه چې څنګه ما وړومبے ذکر کړے دے په هغوي کښې اکثر زما نه رخصت شوي وو او په دې زهٔ څهٔ خفه نهٔ وم تر ډیرې مودې پورې مونږ د روپو د طرف نه په تنګسیا کښې وو ځکه چې زمونږ خرڅ ډیر وهٔ او د حکومت د طرف نه زما ماهواري ماجب ډیر کم وهٔ لیکن چونکې زما په روسیانو څهٔ حق نهٔ وهٔ نو زهٔ د هغې لږ رقم دپاره چې کوم هغوي ما له راکولو هم ډیر مشکور وم کهٔ چرې په دوران ګفتګو کښې سرکاري ملازمانو سره به د روپو ذکر راغے نو ما به ورته وئیل چې دا کومې روپۍ تاسو ماله راکوئ دا زما د حق نه ډیرې دي او کومه مهرباني چې تاسو ما سره کوئ زهٔ د هغې دپاره د خدائے نه دعا غواړم چې ستاسو سلطنت دې همیشه قائم وي. کهٔ چرته به د هغوي څهٔ ښه ورځ وه نو جنرل ابراموف او نورو به زهٔ خپلو کورونو ته میلمه کولم او ما به په ډیرې خوشحالۍ د هغوي دا میلمستیا قبلوله. جنرل به ما سره همیشه د دوستانو سلوک کولو او هرکله چې به زما روپۍ پکار وے یا څهٔ نور شیز نو ما به خپل خزانچي (سردار عبدالله خان د مرحوم عبدالرحیم زوے چې اوس د قطغن او د بدخشان ګورنر دے) هغهٔ له ولیږلو او جنرل به ما سره د کتو دپاره وخت مقرر کړو په دې ملاقاتونو کښې به ما هغهٔ ته خپل مشکلات بیان کړل. مختصر دا چې ما سره به د ډیر عزت سلوک کیدر او د دربار د رسوماتو پابندي به په ما هیچرې نهٔ وه ماته به د افسرانو هرکله چې به زما خوښه وه د کتو اجازت وهٔ او دغه شان هغوي زهٔ په ازادۍ سره کتلم زما دا عادت وهٔ چې لس پنځلس ورځې به کور وم او لس پنځلس ورځې به بهر په علاقه کښې د ښکاره دپاره وتلم.

دغه شان په روس کښې زما یوولس کاله تیر شول ما سره چې څهٔ فکر او غم وهٔ نو هغه د خپل کور د خلقو بابت وهٔ. یعنې زما د مور او د زوي عبدالله متعلق چې هغوي قیدیان وو. په سمرقند کښې زما د دوؤ کالو د قیام نه پس د افغانستان او د روس دوستي هره ورځ مضبوطیدله او د شیر علي او د دې حکومت په منځکښې خط و کتابت ډیریدلو ماته به معلومیده چې محمد عالم خان د بلخ ګورنر به قاصدان امیر مظفر شاه بخارا له رالیږل او هغهٔ دا چیټې جنرل ابراموف او د تاشقند وائسرائے له رالیږلے روسیانو به د دې چیټو جوابونه هم

پـه دغـه وسـاطت ور استول. تر دې چې معامله ټولو خلقو ته ښکاره شوه او په اخباراتو کښې شـائـع شوه ليکن چونکې زما لوستونکو ته به دا خبره معلومه وي نو زهٔ به خپلې قصې ته متوجه شم.

زهٔ چې ورومبے سمرقند ته راورسيدم نو ما د بدخشان د بادشاه لور سره وادهٔ کړے وهٔ او پـه دويـم کـال مـا لـه خـدائے پـاک يـو زوے راکـړو چـې پـه هغـهٔ بانديې ما حبيب الله نوم کښيښـودو (يعـنـې د خـدائے مـحـبـوب) هغـه اوس زما مشرے زوے او وليعهد دے. د هغهٔ د پيـدائـش نـه دوه کـالـه پـس خـدائے پـاک مـالـه يو بل زوے راکړو چې د هغهٔ نوم مې نصر الله کښيښودو (يعنې د خدائے امـداد) او په خپل خپل وخت نور دوه زامن مې وشو. او يوه مې لور وشوه چې د يو څو کالو په عمر کښې مړه شوه.

په سمرقند، کښې زما د قيام نه يو څو کاله پس روسي حکومت خپل فوځونه شهر سبز طرف تـه واستـول او جنرل ماته ووئيل چې دا به ښه وي کهٔ چرې تهٔ هم سره د خپلو سړو لاړ شے د دې په جواب کښې ما ووئيل چې ما په ابتدا کښې تاته او وائسرائے ته دا وئيلي وو. چې زهٔ د روسي حکومت لاندې ملازمت نهٔ منظوروم ولې کهٔ چرې ستاسو خوښه وي نو زهٔ دا کار کـولے شـم چـې د شهـر سبـز ميرانو ته دا ترغيب ورکړم چې هغوي ستاسو سلام له راشي. او ستـاسـو شـرطـونـه په ځان ومني جنرل ابراموف په جواب کښې ووئيل چې اوس د دې خبرې وخـت تيـر شـوے دے ځـکـه چـې اعـلان جـنـګ شوے دے په دې ما هغوي ته ووئيل چې زما ستـاسـو فـوځ سـره د شامليدو سوال هډو پيدا کيدے نشي او د دې نه علاوه مې ورته دا ووې چې کـهٔ چـرې د سـمـرقـنـد خلقو بغاوت وکړو نو زما درې سوه سړو سره خو وسله شته نه نو پـکـار دي چـې تـاسـو مـونـږ لـه درې سـوه تـوپـکـه سره د کارتوسونو راکړئ چې په وخت د ضـرورت مونږه هغه استعمال کړو. هغهٔ د دې وسلې د راکولو وعده وکړه او د ميګزين افسر د دې حکم تعميل وکړو دوه ورځې پس هغوي ټولو د شهر سبز برخلاف پيش قدمي وکړه او ښـار ئ ونيـولـو د دې نه علاوه هغوي شاه بخارا ته وليکل چې تهٔ خپل فوځ د کرکي په لاره د دې ځـائے د خـلـقـو د ويرولو دپاره وليږه روسي فوځ د شهر سبز په قلا څلور ځله حمله وکړه ليـکـن وائ نـهٔ خستې شوه. او جنرل ابراموف په يوه ګولۍ زخمي شو اګر چې شديد نهٔ وهٔ. د پـنـځـهٔ زرو روسي سپاهيانو نه چې په حمله کښې شامل وو دوه زره تنه قتل او مجروح شول. هـغـوي بيا د شهر سبز سړو له يو قاصد وليږلو او د شپږو ورځو د عارضي صلح تجويز ئ ورته پيـش کـړو او ورتـه ئ ووئـيـل چـې دا بـه هيڅکله ونشي چې د روس غونډې لوے طاقت خپل قسـم او لـوظ مـات کـړي. د ښار خلقو دا خبره منظور کړه او د دې لوے طاقت په خبره دوکه شـول. د دولسـو زرو مسلح سړو نه چې په قلا کښې موجود وو يوولس زره سړي هغې غرونو تـه د خپـل بال بچ د راوستو دپاره لاړل کوم ځائے کښې چې شاه بخارا د هغوي برخلاف پيش

قـدمي كوله. روسي فوځ چې وليدل چې د قلا طاقت ډير كم شو نو درې ورځې پس ئ ناساپي پـه نيـمـه شپـه پـه قـلا حمله وكړه او اگرچې هغه يو زر سړو چې په قلا كښې پاتې شوي وو د هـغوي د مقابلې انتهائي كوشش وكړو ليكن قلا واخستې شوه او د شهر سبز ميران درې سوه سـورو سره د غرونو په لار قوقند ته وتښتيدل. روسي جنرل د ښار انتظام د شاه بخارا افسرانو ته حواله كړو او په خپله خپل فوځ سره سمرقند ته واپس راغے.

د جـنـرل ابـراموف په واپسي په بله ورځ زۀ د هغۀ د خير خيريت تپوس له لاړم د هغۀ زخم معمولي شان وۀ او كوم لوټ چې د شهر سبز نه د هغۀ په لاس راغلے وۀ د هغې نه هغۀ ماته يو سـنهري د نسوارو ډبلے يو دوه نليز ټوپک او يو لوے دوربين پيش كړو ما هغۀ ته ووئيل چې زۀ د خپل مذهب د اصولو مطابق د يو مسلمان تالا شوے مال نۀ شم قبلولے. زۀ د روسيانو پـه عهـد شكنۍ باندې ډير په قهر وم او ما ډيز زر د هغوي د جنرل نه رخصت واخستو. دوكه شوي ميران چې قوقند ته راورسيدل نو د هغه ځاے خان خدا يار هغوي گرفتار كړل او تاشقند تـه ئ وائسـراے لـه وليـږل. او د هغوي په نوكرانو او په مال باندې ئ په خپله قبضه وكړه. دا ميران اتلس مياشتې په قيد كښې پراتۀ وو او د هغې نه پس رها شول او يو خاص رقم په طور د تـنـخواه هغوي له مقرر شو. مير بابا بيگ او مير سودا بيگ سره د خپلو وروڼو او يو څو سړو هم هغه شان په 1888ء كښې پـه تاشقند كښې شاهي قيديان وو او شاه بخارا هغوي له خپلې بيبيانې او د كور خلق ليږلي وو.

دوه كـالـه پـس روسـي فـوځ د اركـنـج بـرخلاف د جنگ تيارى وكړې او د تاشقند گـورنـر پـخپلـه جـزک ته خپل فوځ سره راغے او ماله ئ دعوت راكړو چې راشه او ما هلته وگوره ځكه چې هغه د نور عطا د ريگستاني دشت په لاره باندې تلو زۀ جزک ته لاړم او دوه ورځـې پـس هـلته ورسيدم. گورنر حسب معمول ماته په ډيرې گرمجوشۍ پخير راغلے ووې او وې وئـيـل چې زۀ ستا په ليدو ډير خوشحاله شوم. هغۀ ما نه تپوس وكړو چې كۀ چرې تۀ او ستا سړي ما سره اركنج ته ځي نو زۀ به ستا د سفر دپاره ټول ضروري انتظام وكړم ما ورته په جـوابـ كـښـې ووې چې زما د سړو دپاره د يوې مياشتې ضرورت دے چې هغوي ما سره د تلو دپـاره تيـار شي. او تۀ خو دلته صرف شلور ورځې ئ. د دې نه علاوه ستاسو جگړه مسلمانانو سـره ده او چـونـكـې مـونږ د يو دين يو په دې وجه زمونږ مذهب مونږ د مسلمانانو برخلاف د جنگ نه منع كوي. ما دا هم ورته ووې چې زۀ يو بې فوځه او بې طاقته سړے يم نو كۀ چرې زۀ روسي فوځ سره لاړ شم نو د هغوي رعب به زيات نشي او كۀ پاتې شم نو په طاقت كښې به ئ څـۀ كـمے رانشي. د دې په جواب كښې وائسراے ووې چې ماته خو ستا خوشحالي منظور ده او دا څـۀ لازمي نـۀ ده چې تـۀ مـا سـره لاړ شے ما ورته ووې چې زۀ د دې حكومت د سيورى لانـدې پـه وسيدو كـښـې پـوره خـوشـحاله يم او زما خوشحالي په ښكار كښې ده ځكه چې د

ډیرې ورډې تجربې نه پس زما د جنګ نه نفرت پیدا شوے دے. دا خبره ما هسې په خندا او ټوقه کښې وکړه. هغهٔ ماته ووې چې ما حکم کړے دے چې تا دپاره زما په خوا کښې دوه ترکي خیمې ولګولې شي د دې دپاره ما د هغهٔ شکریه ادا کړه. دا خیمې د زار د وزارهٔ د خیمې نه دیرش قدمه لرې او د وائسرائے د خیمې نه څلویښت قدمه لرې لګیدلې وے.

د ګورنر دا عادت وهٔ چې ورځ کښې شپږ یا پنځهٔ ځله به زما کتو له راتلو. او په دې طریقه مونږ شل ورځې تیرې کړې. یوه ورځ هغهٔ زهٔ وبللم او ماته ئ ووې چې زمونږ فوځ افغانستان ته عنقریب په رو انیدو دے نو زهٔ درنه تپوس کوم چې آیا تهٔ هم تلهٔ غواړې؟ ما ورته په جواب کښې ووې چې کهٔ چرې ستاسو پخپله د افغانستان د اخستو نیت وي نو زما د تلو نه څهٔ فائده؟ لیکن کهٔ چرې تاسو ماله هغه واپس راکول غواړئ نو ماله صرف ستا د حکم راکولو ضرورت دے او زهٔ ذمه واري اخلم چې په یو زر پیاده او یو زر د رسالې په سورو او په یو بیټري توپخانې به زهٔ خپل ملک واپس واخلم. ما ورته ووې چې زهٔ به درته دعا کوم او زهٔ دلته په سمرقند کښې په ښکار کښې ډیر خوشحال یم. په حقیقت کښې ئ زما په دې خبره باور نهٔ کیدو چې هغوي یو څو سوۀ سړو سره په افغانستان پیش قدمي کوي. هغوي ته پته وه چې پښتانهٔ جنګجو خلق دے او د ارګنج په شان نهٔ دي. په دې وجه زما دا یقین وو چې د دې خلقو څهٔ نوره مدعا ده.

تر مخکښې مني پورې هیڅ څهٔ کارروائي ونهٔ شوه. او هم هغه شان په دې خبره بحث کیدو چې آیا کابل ته فوځ لیږل مناسب دي او کهٔ نه. لیکن په دې اثنا کښې په روسي فوځ کښې سخته وبا پریوته. سپاهیانو د ویرې نه چاوڼې پریښوده او شپږ سوه ګاډې د بیمارانو او د قریب الموت خلقو نه ډک یو ځاے ته روان وو چې د هغوي دپاره مخصوص شوے وهٔ هر کله چې وائسرائے اجازت واخستو او تاشقند ته روان شو نو ما هغهٔ ته خپله پیش ګوئي ور په یاد کړه او ورته مې ووې وهٔ دې لیدل چې تاسو سره د دومره تیاری افغانستان ته لاړ نهٔ شوئ. هغهٔ ومنله چې ستا خبره درست ده.

د ژمي په اخر کښې او د سپرلي په شروع کښې د دې خبرې اعلان وشو چې امیر شیر علي خان د انګریزانو برخلاف شوے دے او د هغهٔ او د روسي حکومت ترمنځه دوستي ورځ په ورځ زیاتیږي. لږې ورځې پس د قوقند مسلمانانو او ملیانو بغاوت وکړو دا واقعه په دې شان پیښه شوه او دا یوه دلچسپه قصه ده قریباً پنځوس ملیانو او دوۀ سوۀ خانانو په څهٔ خاص شرطونو روسي حُکومت سره د خپلو هم مذهبو خلقو د امداد کولو وعده کړې وه زهٔ د دې شرطونو په ماهیت خبر نهٔ یم. دې خانانو او ملیانو یو موچي ته جامې بدلې کړې او دولت خان نوم ئ پرې کښیښودو ځ چې د خدا یار خان شاه قوقند تربور وهٔ. روسیانو د دولت خان نوم اوریدلے وهٔ چې د موسي زوے دے او موسيٰ خان د خپل ملک بادشاه وهٔ لیکن روسیانو هغه

چرې ليدلے نۀ وۀ. دې دروغژنو مليانو د قوقند خلقو ته ووې چې خدا يار خان دا نيت کړے دے چې د قوقند ملک روسيانو ته حواله کړي او په دې سبب د ټولو مسلمانانو دا فرض دي چې د هغۀ نه بادشاهي واخلي او د هغۀ تربور دولت خان خپل بادشاه تصور کړي. دا جاهل خلق ټول د دولت خان نه چاپيره را يو ځاے شول او خدا يار خان ئ معزول کړو. د هغې نه پس روسيانو ملک واخستو او دغه مليانو او خانانو له ئ د خپلو وعدو مطابق هيڅ ور نۀ کړل. دولت د هغوي دروغژن بادشاه ته هم هيڅ عوضانه ور نۀ کړې شوه. او په دې خانانو کښې ډير خلق گرفتار کړې شو او قتل شول. او روسيانو قوقند واخستو او هلته ئ نوې ښار اباد کړو چې د هغې نوم شهر سيئم دے او ډير ښکلے ښار دے او تراوسه پورې د هغوي په قبضه کښې دے.

زۀ اوس بيا شير علي ته واپس راځم. د ډير وړد خط و کتابت نه پس د هغۀ د روسي حکومت په دوستی باندې پوره يقين راغے. او د حکومت برطانيه افسرانو سره ئ دشمني راواخسته. خپل مخ ئ د ملکۀ معظمه د طرف نه واړولو او د شهنشاه روس طرف ته ئ مخ کړو. هغۀ کښې دومره عقل نۀ وۀ چې په دې پوهه شوے وے چې کوم مال په يوه منډهي کښې نۀ خرڅيږي هغه په بله منډهی کښې هم نۀ خرڅيږي. په نورو الفاظو " څۀ چې تۀ خپلو دشمنانو سره کوے هم هغه شان کار به خپلو دوستانو سره هم وکړې". هغۀ يو طرف ته په خپلې بې وفايي او دورنگی اعتبار ورک کړو او بل سره ئ هغه وعدې وکړې چې يو هوښيار حکومت به هم په هغې اعتبار نۀ وۀ کړے. يعنې دا چې زۀ (شير علي) به تاسو ته اجازت درکړم چې هندوستان طرف ته ريلونه جوړ کړئ او د انگريزانو برخلاف به زۀ تاسو سره په جنگ کښې ملگرے شم. د دې مراعاتو په بدل کښې روسي حکومت دا لوظ کړے وۀ چې مونږ به هغه ملک چې د دريائے سندھ په خوا کښې پروت دے او وړومبے د افغانستان ملکيت وۀ او د افغان بادشاهانو جدي ملک وۀ ځکه چې د هغوي يوه حصه ده دا به مونږ واخلو او شير علي ته به ئ حواله کړو. د روس قزاقان ډير خوشحاله وو چې مونږ به هندوستان طرف ته پيش قدمي کوؤ او د لوټمار په اميد کښې د هغوي خوشحالي ډيره زياته وه. ليکن کومې اندازې چې هغوي لگولې وے هغه ټولې غلطې ثابتې شوې. او د انگريزانو او د شير علي مقابله په درۀ خيبر کښې او د شتر گردن په غر چې پيواړ کوتل ورته وائي وشوه. امير د هغوي مقابلې ته نشو ودريدے ځکه چې د هغۀ فوځ بې قاعدې وۀ او امير بلخ ته وتښتيدو. چې د کور خلق ئ هلته د دې نه هم يو څو هفتې وړاندې استولي وو. هغۀ خپل زوے يعقوب د بندي خانې نه رها کړو او د کابل حکومت ئ هغۀ ته حواله کړو. انگريزي فوځ گندمک ته راورسيدو او د جلال اباد نه ئ يعقوب سره خط و کتابت شروع کړو. يعقوب هغوي له شال کوټ (کوئټه) خيبر، کرمه او پشين ورکړو. هغۀ يو انگريزي افسر کيوگنري په طور د سفير کابل کښې

منظور کړو. په دې اثنا کښې شیر علي چې بلخ ته وتښتیدو نو د پاګلانو په شان خبرې به ئ کولې هغهٔ ووئیل چې پښتنو ما سره د انګریزانو برخلاف مرسته ونکړه او زهٔ روس ته ځم او په خپل امداد کښې به قزاق د هغې ځاے نه راولم او د پښتنو ښځې به ورله په انعام کښې ورکړم. لیکن د دې نه لږه موده پس هغه (شیر علي) په بلخ کښې مړ شو. (فروري 1879ء) او د کابل سردارانو یعقوب خپل امیر تسلیم کړو اګرچې فوځ او رعایا د هغهٔ په حکومت باندې رضا نهٔ وو. ما دا هم اوریدلي دي چې دې انګریزي سفیر خپل ځان دا شان ګڼلو لکه چې دافغانستان بادشاه وي او یعقوب ته به ئ حکمونه ورکول. پښتون قوم د هغهٔ په دې لاف زنی خفه وهٔ او هغوي په هغهٔ حمله وکړه. ځنې خلق دا وائي چې دا حمله د یعقوب په علم سره شوې وه او بله خبره خلق دا هم کوي چې د عبدالله جان ولیعهد مور درې زره پونډه داؤد شاه خان له په دې غرض ورکړي وو چې هغه خلق د کمناري برخلاف د بغاوت دپاره راپاڅوي او هغه قتل کړي د دې دپاره چې د یعقوب نه بادشاهي لاړه شي. د کابل افغانان دا دویمه قصه رښتیا ګڼي.

په دغه ورځو کښې داؤد شاه سپه سالار اعظم وهٔ او د غلزو د قبیلې د یو ادنیٰ قوم سړے وهٔ. څهٔ وخت چې هغه هلک وهٔ نو په دیهه سبز کښې هغه په طور د ګډبه نوکر وهٔ او چې د شلو کالو شو نو په کابل کښې ئ نوکري اختیار کړه د دیهه سبز کلے د کابل په مضافاتو کښې پروت دے. او د بهترینو خربوزو دپاره مشهور دے. د کمناري د قتل په سبب انګریزي فوځ د لارډ رابرټس د کمان لاندې په کابل پیش قدمي وکړه چې د دې معاملې تفتیش وکړي. او د هغې عهدشکنی بدل واخلي چې کوم د دې بزدل او بد دیانتو خلقو د لاسه شوې وه. یعقوب خان هغوي له د پیشوایی دپاره لاړو لیکن انګریزي افسران د هغهٔ په فریب پوهه شو او هغه ئ قیدي کړو او هندوستان ته ئ واستولو. (دسمبر 1879ء) هغوي په کابل او قندهار قبضه وکړه او په انصاف او صلح ئ حکومت وکړو. د شیر علي د ناروغتیا او د مرګ نه وړومبے هغهٔ روسي ګورنر ته خپل نمائنده ګان ولیږل د هغوي نومونه دا وو سردار شیر علي خان قندهاري، قاضي پشاوري، مفتي شاه محمد، منشي محمد حسن. دوئ سره د مرحوم دوست محمد خان یو څو ذاتي نوکران او دوه یا درې فوځي افسران هم ملګري وو. دا سړي سمرقند ته راورسیدل او شیر علي په بلخ کښې پاتې شو. او دا ئ طمع وه چې روسي فوځ به زما امداد له راشي. د روسي ګورنر دا خیال وهٔ چې شیر علي به پخپله زما لیدو له راشي چنانچه هغهٔ یو څو باغونه د هغهٔ دمیلمستیا دپاره ښائسته کړي وو او هر کله چې هغوي د هغهٔ په انتظار کښې ناست وو او هغوي ټولو د انګریزانو برخلاف منصوبې جوړولې نو په دې منځکښې شیر علي مړ شو. لکه چې څنګه وړومبے ذکر شوے دے او د هغوي ټول تجاویز ئ برباد کړل. زهٔ تاشقند ته په دې غرض لاړم چې راتلونکي واقعاتو نه ځان خبر کړم. یعقوب

روسي وائسرا ے ته وليکل چې زهٔ د خپل پلار تړولې وعدې او اقرارونه لفظ په لفظ هغوي سره د پوره کولو دپاره تيار يم. او وائسرا ے د هغهٔ د دوستی په دې خبرو ډير زيات خوشحاله شو او د هغهٔ چيټهی ئ مخکښې پيټرزبر ګ ته وليږله. يعقوب دا هم وئيل چې زهٔ د عبدالرحمٰن د موجودګۍ متعلق هم فکرمند يم. او زهٔ به ډير خوشحاله شم کهٔ چرې تاسو هغه د سمرقند نه بل خوا لرې کړئ. دغه وخت ماته پته ولګيده چې د روسيانو خيالات ماته دومره دوستانه نهٔ وو ليکن ما پرې ځان ناجانه کړو او هيڅ نوټس مې پرې وانهٔ خستو او دا شان رويه مې اختيار کړه چې لکه څوک خپل ټول وخت په سير و سياحت کښې د تيرولو کوشش کوي. هرکله چې زهٔ تاشقند ته ورسيدم نو د شير علي افسران زما نه مخکښې هلته موجود وو ما خپل مخبران مقرر کړل چې هغوي ماله د هغوي د ټولې کارروايي باقاعده اطلاع راکوي. د دې مخبرانو نه ما دا واوريدل چې په دوئ کښې هر يو افسر بيل بيل وائسرا ے سره يو يو اقرار کړ ے د ے چې زهٔ به دا دا کار کوم او غالباً دا د دې خبرې په عوض کښې چې روسي فوځ به د هغوي امداد له ورځي. دا شرطونه حسب ذيل وو :

سردار شير علي به د قندهار علاقه هغوي (روسيانو ته) حواله کوي. منشي دا اقرار کړ ے وهٔ چې د کابل او هزاره جاتو قزلباش به ستاسو مطيع کوم. د مفتي په ذمه دا کار وهٔ چې ټول غلزي به د هغوي اطاعت قبلوي. قاضي دا اقرار کړ ے وهٔ چې د پيښور، سوات او د باجوړ قبائل به ستاسو مطيع کوم. د دې حالاتو د معلومولو نه پس زهٔ د تاشقند نه رخصت شوم او واپس سمرقند ته راغلم. د شير علي نمائنده ګان هم سمرقند ته راغلل.

اوس زهٔ د خپل د ترهٔ د زامنو حالات بيانوم چې په سمرقند کښې زما د قيام په دوران کښې هغوي له خرڅ خوراک ما ورکړ ے وهٔ. دا زما د ترهٔ زامن درې تنه وو يعنې سردار محمد سرور خان، سردار عزيز او سردار حسن. هرکله چې د شير علي دا اول ذکر شوي نمائندهٔ ګان راورسيدل نو سردار سرور زما د طرف نه يوه چيټهی شير علي قندهاري ته وليکله هغهٔ زما نه زما مهر وغوښتو ما انکار وکړو او ورته مې ووې چې زهٔ دا نهٔ غواړم چې شير علي له زهٔ ځان سره د ليدو دعوت ورکړم ځکه چې هغهٔ او د هغهٔ ملګرو زما برخلاف روسيانو سره عهدنامې کړي دي په دې سرور ماته ووې چې شير علي ما سره قسم کړ ے د ے ما وخندل او ورته مې ووې چې دا سړي د قرآن څهٔ پروا نهٔ کوي نو په هغې باندې د قسم به څهٔ پروا وکړي. ما په دې طريقه د څهٔ وخت دپاره هغهٔ سره بحث وکړو ليکن سردار اصرار وکړو چې تهٔ په دې چيټهی ضرور مهر ولګوه زهٔ ډير خفه شوم او مهر مې سردار طرف ته وغورځولو او ورته مې ووې چې زهٔ په خپل لاس دا چيټهی نهٔ مهر کوم او نهٔ غداران ملک سره څهٔ تعلق ساتل غواړم. سردار زما مهر ولګولو او چيټهی ئ شير علي قندهاري له واستوله. ما هغهٔ ته يقين وزکړو چې تا غلطي وکړه او يوه ورځ به تهٔ په دې افسوس کو ے. زما په سړو کښې غازي

جان محمد نومې يو سړی وۀ چې ډېر بې دينه او بد ديانته وۀ اګر چې د هغۀ نوم غازي وۀ هغۀ ډېره خلقو لـه د دوکې ورکولو دپاره لويه کړې وه چې هغوي دا خيال وکړي چې زۀ سپين ږيرے او ديانتدار سړے يم ليکن د هغۀ زړۀ د سکور په شان تور وۀ. دا چيټئ د دې سړي په لاس واستولې شوه. هغۀ دا چيټئ ولوسته نو د سمرقند جنرل له ئ واستوله او هغۀ بيا کافمين وائسرائے ته واستوله.

هر کله چې پنځۀ ورځې تيرې شوې او غازي واپس رانغے نو ما سرور ته ووې چې تا زۀ غرق کړم او باوجود د دې نه چې ما انکار کولو ولې تا په زور په هغه چيټئ زما مهر ولګولو. په شپږمه ورځ هر کله چې مونږ په سورلئ بهر ته وتي وو نو يو نوکر په پويه مونږ پسې راغے او وې وئيل چې د ښار ګورنر جنرل آئي وانوف ترجمان سره ستاسو په ځائے کښې ستاسو په انتظار کښې ناست دے. ما سرور ته مخ واړولو او ورته مې ووئيل چې دا د هغې تخم ميوه ده چې تا کرلے وۀ. زۀ خو واپس راغلم ليکن سرور ټال مټول وکړو. د روغ جوړ د تپوس او د چايو څښلو نه پس ګورنر ما ته ووې چې وائسرائے تا په تاشقند کښې ليدل غواړي. ما ورته ووې چې سبا له لس بجې به روان شم ليکن ګورنر ماته ووې چې نه تۀ به اوس ځے ما قطعاً انکار وکړو او هغه زما نه رخصت شو بيا ما د خپل ترۀ زامن راوبلل او ورته مې هدايات ورکړل چې زما په غير حاضرئ کښې هغوي له څۀ کول پکار دي. ما هغوي ته ووې چې زما دا توقع ده چې هغوي به ما ګرفتار کړي او تاشقند ته به مې وليږي نوما هغوي ته منت وکړو چې تاسو بلخ ته وتښتئ چې ترکستان ته ورسيږئ. بيا پکار دي چې تاسو د بلخ خلقو او فوځ سره خط و کتابت شروع کړئ ما هغوي له د هغه ځائے د خلقو په نوم خطونه ورکړل او په هغې کښې مې ورته وليکل چې ما خپل د ترۀ زامن ستاسو ملک ته راستولي دي او هر څۀ خدمت چې تاسو د هغوي وکړئ نو زۀ به ئ دغه شان قدر کوم لکه چې څنګه تاسو زما قدر کړے دے. ما هغوي له يو فالتو مهر هم ورکړو په دې خيال چې زما د طرف نه کۀ د نورو چيټو ليکلو ضرورت وي نو چې هغوي ليکي او مهر پرې لګوي. ما هغوي له څلور زره کابلي روپۍ هم د لارې د خرڅ دپاره ورکړې دا ما د هغې پنځلس زره روسي روپو نه بچ کړے وے چې کومې وائسرائے ماله دوه مياشتې وړومبۍ راکړې وے. دا رقم د پنځۀ زرو هندوستاني روپو برابر وۀ د دې هداياتو د ورکولو نه پس زۀ بيا حرم ته لاړم.

هم په هغه شپه دولس بجې ګورنر سره د ترجمان او درې سوۀ د رسالې سورو او دوو سوۀ پوليس والو راغے او زما نوکرانو ته ئ حکم وکړو چې عبدالرحمٰن د حرم نه راوباسئ هغوي زۀ راويښ کړم او پيغام ئ راکړو. ګورنر ماته ووې چې تۀ به ضرور ماسره ځے. ځکه چې وائسرائے تا غواړي ما په جواب کښې ووې چې کۀ چرې دا ماته پته وے چې تاسو ما قيدي کوے نو زۀ به تاسره هم پرون سحر تلے وم ما بيا خپله وردي واچوله او روان شوم ټول

سوارهٔ ایستلو تورو سره زما نه چاپیره شول او د پولیس سپاهیان زمونږ نه وړاندې تلل ما څان سره دوه نوکران بوتلل. د یو نوم فرامرز خان چې اوس د هرات کماندنټ چیف دے او بل جان محمد خان وهٔ چې اوس په کابل کښې د خزانې افسر اعلیٰ دے. چې مونږ د جنرل آئي وانوف څاے ته ورسیدو نو ما د هغهٔ نه تپوس وکړو چې زهٔ ولې تاسو رابللې یم نو هغهٔ په جواب کښې ووې جنرل کافمین حکم کړے دے چې تهٔ تاشقند ته راشه او بیا هغه به تاته د دې وجوهات بیان کړي ما چې جنرل آئي وانوف ولیدهٔ نو ما د هغهٔ نه تپوس وکړو چې ما څهٔ جرم کړے دے چې تاسو د نیمې شپې د مسلح سپاهیانو په ذریعه زهٔ دلته راوستم هغهٔ د ګورنر نه تپوس وکړو چې تا ولې دهٔ سره دا شان خراب سلوک کړے دے د دې په جواب کښې ګورنر ووې چې ما په دې خیال څان سره دا دومره لوے ټولے بوتلے وهٔ چې هسې نه د دهٔ سړي زمونږ مقابله وکړي او دې تلو ته پرې نهٔ ږدي. د دې خبرې د صداقت په ثبوت کښې هغهٔ جنرل ته ووې چې د دهٔ ټول سړي په وسله پُر وو او کهٔ چرې دې مونږ سره په رضا نهٔ وے راغلے نو په زور باندې د دهٔ راوستل مشکل وو. جنرل ووې چې دا بیوقوفي وه چې تاسو دې په طور د قیدي راوستو د دې په جواب کښې هغهٔ ووئیل چې دا د جنرل بیوقوفي وه چې مونږ ئې په داسې وخت استولي وو. هرکله چې هغوي دغه شان په یو بل الزامونه لګول نو ما ورته په قلاره غوږ اېښے وهٔ تر دې پورې چې اخر جنرل ووې چې تهٔ کور ته تلے شے. په شرط د دې چې تهٔ دومره ووایې چې زهٔ به سبا سحر له پولس بجې بیا راشم په دې صورت کښې به زهٔ خپل یو نائب سره د ګاډي درواستوم چې تاسره تر تاشقند پورې لاړ شي. دغه شان زهٔ خپل کور ته واپس راغلم. او د باغیچې دروازه مې بنده بیاموندہ ما چې خپلو نوکرانو ته د دروازې د پرانستلو حکم وکړو نو وهٔ مې لیدل چې زما د ترهٔ زامن سره د خپلو دوستانو اودهٔ شوي دي. زما زامن زما ښځه او پروانه چې اوس په کابل کښې نائب سالار اعظم دے او قربان علي چې زما د کورنۍ خزانې خزانچي دے ویښ ناست وو. او زما په قسمت ئې ژړل. زهٔ ډیر مایوسه او دل شکسته شوم چې مې خپل تربوران او ټول نوکران اودهٔ ولیدل ما د دې سړو پرورش لکه د خپل اولاد کړے وهٔ او دغه د هغې صله وه. زهٔ چې حرم ته ورننه شوم نو ما خپلې ښځې او بچو له دلاسه ورکړه او ورته مې هدایات ورکړل چې کهٔ ما سره څهٔ واقعه پیښه شوه نو تاسو له څهٔ کول پکار دي بیا ما د خپل سفر دپاره تیارې وکړې.

سبا سحر چې موعوده ګاډے راورسیدو نو مهٔ څان سره پروانه خان او نظیم الدین (چې بیا وروستو د رسالې کرنیل شو) روان کړل. او چې د نائب کور ته ورسیدو نو ما ولیدل چې هغوي څهٔ چیټۍ لیکي په دې ما هغوي ته ووې چې ما بیګاه بالکل خوب نهٔ دے کړے او زهٔ به ستاسو د دې مصروفیت نه فائده واخلم او کهٔ چرې تهٔ اجازت کوے نو زهٔ به اودهٔ شم هغهٔ ماته اجازت راکړو او ما د اودهٔ کیدو کوشش وکړو لیکن چونکې غمژن وم د دوه نیمو

ګینټو نه مې زیاتې خپل غمونه هیر نهٔ کړې شو او د هغې نه پس روان شو زما ګاډے د شیر علي قندهاري د کور د دروازې په خوا کښې تیر شو د دې دپاره چې هغه ووینې چې زهٔ قیدي یم. ټوله دنیا زما په سترګو کښې د خفګان او د غم نه تیارهٔ وه او په زړهٔ کښې مې راغلل چې د دې ګاډي نه کوز شه او ورومبے د دې نه چې زهٔ قتل شم نو چې خپل ځنې دشمنان خو مړهٔ کړم کنه. ولې بیا مې هوش سنبال کړو. او ځان سره مې ووئیل چې دا شان ناګهاني جذبات د بیوقوفو خلقو وي او هوښیار خلق د بدل اخستو دپاره د مناسبې موقعې په انتظار کښې وي ما ځان سره خیال وکړو چې دنیا د تکلیفونو او مشکلاتو نه ډکه ده. تر دوؤ ګینټو پورې زهٔ بالکل بې حس و حرکت پروت وم د هغې نه پس ما هوش سنبال کړو او د زړهٔ تسکین مې حاصل کړو. مونږه دوه ورځې او یوه شپه مزل وکړو او د هغې نه پس تاشقند ته ورسیدو ماله هغوي هم هغه بنګله راکړه چې کومه ئې ورومبے راکړې وه چې یو ډیر ښکلے کور وهٔ او یو لک روبل د هغې په عمارت لګیدلي وو هغې سره یوه ښکلې باغیچه هم وه او د دیرشو اسونو او ګاډو دپاره اصطبلونه هم پکښې وو. زهٔ به په دې کور کښې همیشه په کال کښې څلور څله پاتې کیدم. هر کله چې زهٔ به د تفریح کتو دپاره د ښار کتلو له تلم. زهٔ اوس په هغې کښې په بل حیثیت دیره وم او په دې فکر کښې پروت وم چې ما سره به څهٔ چل کیږي. هر کله چې حسب معمول بیره او باورچي راښکاره شول نو ترجمان او سر کاتب رخصت واخستو ما د افسرانو نه تر دوؤ دریو ورځو پورې هیڅ وانهٔ وریدل او د هغې نه پس سر کاتب زما کور ته راغے او د حسب معمول سلام علیک نه پس هغهٔ ماته ووئیل چې ګورنر تا کتل غواړي. د دې دپاره مونږه دواړه په ګاډې کښې سوارهٔ لاړو او ماته حسب معمول په ګرمجوشي پخیر راغلے ووئیلے شو. ګورنر زهٔ د ځان په خوا کښې کښینولم او ما نه ئې زما د سفر تپوس وکړو ما هغهٔ ته ووئیل چې زهٔ هیڅ نهٔ یم پوهه شوے چې ما څرنګه لار وهلې ده هغهٔ وخندل او ماته ئې ووې " د سمرقند خلق وائي چې تهٔ وران کارے شوے ئې "ما په جواب کښې ووې چې دا خو ددې حکومت لیاقت دے چې زهٔ دا شان شوے یم په دې هغهٔ یوه چیټي راوویسته او ماته ئې ووې چې دا څهٔ دي؟ ما ورته ووې چې ما له راکړه او ما ولیدل چې دا هم هغه چیټي ده چې کوم سرور شیر علي قندهاري له استولې وه. ما ورته ووې چې اګر چې دا ما پخپل لاس لیکلے نهٔ ده لیکن ما پرې مهر لګولے دے هغهٔ ماته ووې چې تا ولې دا شان کار کړے دے. ما ورته په جواب کښې ووې چې کهٔ چرې په دې چیټي کښې ستاسو د حکومت برخلاف څهٔ خبره وي نو بیا بیشکه زهٔ ګناه ګار یم لیکن د دې خبرې څهٔ ممانعت دے چې کهٔ چرې زهٔ خپل کورنې خط و کتابت چا سره وکړم. هغهٔ ووې چې زهٔ دا منم لیکن تاله پکار وو چې ورومبے د دې نه چې تا دا شان خط لیکلے وے پکار وو چې تا زما نه اجازت اخستے وے ما هغهٔ ته په جواب کښې ووې چې تهٔ دومره لرې وے چې قبل د دې نه چې ستا اجازت راغلے وے نو

افغان مشن به بلخ ته تلے وۀ. دا مې ووئيل او ما چيتي دوه ټکرې کړه هغۀ ماته وکتل او بيا ئ راته ووئيل څه سمرقند ته لاړ شه. ستا د کور خلق ستا متعلق غمژن دي. ما ورته ووې چې تاسو په سمرقند کښې زۀ په ګرفتارولو بې عزته کړم او زۀ په هيڅ وجه تلو ته تيار نۀ يم ولې کۀ چرې تۀ ماته دلته يو کور راکوے نو زۀ به تاشقند کښې ديره شم. وائسرائے په جواب کښې ووې چې څان ته کور خوښ کړه زما غرض په دې کښې دا وۀ چې زۀ په يو داسې مقام کښې ديره شم چې افغانستان کښې په اسانه داخليدے شم. د دې دپاره چې موقع په لاس راشي نو چې زۀ وتښتم ما يو کور خوښ کړو او چې يوه شپه مې هلته تيره کړه نو بيا سمرقند ته د خپل کور د راوستلو دپاره لاړم او هغوي مې راوستل او هلته ديره شوم.

زۀ افغانستان ته د تلو په تيارو کښې ډير زيات مصروف وم او جنرل کافمين سره د ډير بحث مباحثې نه پس ما د روسي حکومت نه خپل ملک ته د واپس تلو اجازت واخستو. يوه ورځې زۀ ناساپي د دې دپاره غيب شوم چې لاړ شم او يو څو سوداګرانو سره ديره شوم څکه چې هغوي ما سره د روپو لوظ کړے وۀ او دا مې هم معلومول غوښتل چې آيا ما پسې څۀ مخبران شته او کنه. ما دوه زره پونډه د دې سوداګرانو نه قرض واخستل او واپس راغلم او په دې خوشحاله شوم چې څه هيچا هم ونۀ ليدم. زۀ چې کور ته راورسيدم نو وۀ مې ليدل چې زما ټول نوکران حيران زما په تلاش کښې ګرځيدل سردار عبدالله خان زما د کور په دروازه کښې ډير دلګير ولاړ وۀ ما چې په هغۀ اواز وکړو نو هغۀ راته سلام وکړو او زما په واپسي ئ د خوشحالي اظهار وکړو روپي ما هغۀ ته حواله کړې او زۀ کور ته دننه لاړم هغه ما پسې راغے او ما نه ئ تپوس وکړو چې دا پونډونه تا کوم څاے پيدا کړل ما ورته ووې چې ما قرض اخستي دي ليکن هغۀ ته مې ووې چې پام کوه چې د دې ذکر چا ته ونکړې هسې نه چې مونږ ته تکليف پيښ شي. بل سحر ته زۀ د کرايې په ګاډۍ کښې د اسونو منډهي له لاړم خلقو سلام وکړو او سوداګران چې خبر شو چې زما اسونه پکار دي نو ما له راغلل د هغوي نه ما سل اسونه په بيعه واخستل. ما عبدالله د زينونو او قيزو وغيره او زما او زما د سپاهيانو د سفر د ضروورياتو د اخستلو دپاره واستولو. دغه شان ما په دريو ورځو کښې د خپل سفر تيارے پوره کړو. څلورمه ورځ چونکې د جمعې وه له دې کبله زۀ د ماښځۀ نه پس په سفر روان شوم. او ټولو دوستانو او اشنايانو ته مې خيرباد ووئيل هغه شپه زۀ د چهل چک درياب په غاړه ديره شوم سبا سحر چې زۀ روان شوم نو زۀ د يو نوي روسي ښار په لاره تلم چې ما يوه عجيبه نشاني د خداے پاک له طرفه وليده. ما د ډيرو اسونو يو نرم شان اواز شاته واوريدو لکه چې شل زره اسونه ما پسې راروان وي او هر کله چې هغوي ما ته رانزدې شول نو اواز هم زيات شو تر دې پورې چې ماته دا شان معلوميده لکه چې هغوي زما سرو سره شامل شول او چې پنځۀ سوه ګزه هغوي سره لاړل نو بيا د هغوي نه وړاندې شول د دې نه ما دا دليل واخستو چې خداے

پاک ما دپاره لار صفا کړې ده او زۀ به په اخر کښې کامیاب یم. هر کله چې زۀ د سیند په خوا کښې یو مقام له راغلم نو زۀ ډیره شوم او د هغې ښار ګورنر چې یو روسي وۀ زۀ د ډوډۍ دپاره میلمه کړم ما وړومبے انکار وکړو لیکن څۀ وخت چې هغۀ اصرار وکړو نو ما منظوره کړه. هغۀ مانه د ډوډۍ په دوران کښې تپوس وکړو چې روسیانو تاله د سفر دپاره څومره خرڅ درکړے دے ما ورته ووې هغۀ ما سره دا ډیره مهرباني کړې وه چې ما له ئې خپل ملک ته د واپس تللو اجازت راکړے دے . ما د هغوي نه څۀ زیاتي نۀ غوښتل خدائے پاک مهربانه دے او هغه به زما حاجتونه پوره کوي. زما په دې وینا ګورنر چې (آنریري کرنیل وۀ) دکمرې نه ووتو او پنځۀ زره سُم ئې راوړل( سُم یوه روسي سکه ده) او ماته ئې منت وکړو چې دا منظور کړه ما د هغۀ ډیره شکریه ادا کړه لیکن د روپو د اخستو نه مې انکار وکړو او ورته مې ووې چې ماته ضرورت نشته اخر کار چې هغه پوهه شو چې هغه ما دې روپو اخستو ته نشي مائل کولے نوهغۀ یو شپږ ډزې تماچه او یو کارتوسي رائفل راوړو او ماته ئې ووې چې دا په طور د یادګار زما د طرف نه منظور کړه ما هغه واخستل او هغه ماښام مې ورسره په خوشحالی تیر کړو. سبا سحر ځنې هغه دوستانو چې د تاشقند نه ما سره راغلي وو او دغه کرنیل زما نه رخصت واخستو او زۀ یارتیپ ته روان شوم ماښام ناوخته زۀ دې ښار ته ورسیدم او دوه ورځې مې هلته ارام وکړو د هغې نه پس زۀ پس کیت ته لاړم. او درې ورځې مې هلته قیام وکړو او بیا مخکښې جنتکلي نومے یو کلي ته لاړم په بله ورځ زۀ خوجن ښار ته ورسیدم او هلته شپږ ورځې د یو دوست سره پاتې شوم. زما د قیام نه درې ورځې پس زۀ د اسونو د اخستو په نیت د اسونو منډهې ته لاړم لیکن چونکې په منډهې کښې یو څو خراب اسونه وو نو ما د خلقو نه تپوس وکړو چې زۀ به ښۀ د باربرداری یابوان کوم ځاے بیاموم یو سړي چې زما په خوا کښې ولاړ وۀ ماته ووې چې ما سره لاړ شه او لږه شان قهوه یا چائے ما سره وڅښه زۀ هغۀ سره لاړم او ماته معلومه شوه چې د روسیانو د دې ملک نه وړومبے د خوجن سردار وۀ او چونکې د ټولو لویو لویو خلقو نه خپلې خپلې عهدې اخستې شوې وے نو سرداران مجبور شوي وو چې ځان له دکانونه پرانزي او د سوداګرانو په شان تجارت وکړي. زما نوي دوست نور سرداران هم چې هغوي هم دکانداران وو ما سره د ملاقات کولو دپاره راوستل. او زما ئې ډیره طبع تسلي وکړه او وې وئیل چې مونږ سره ډیر ښۀ ښۀ اسونه شته هغوي په لږ ساعت کښې سل اسونه راوستل او د هغې نه ما دیرش واخستل او ما له هغوي د خپل محبت او د دوستانه تعلقاتو ډیر اطمینان راکړو.

# شپږم باب

د عبدالـرحمٰن خان د بدخشان په طرف روانيدل، په لاره ورته د يخنى او لوږې قسم قسم تکليفونه پيښيدل، سره د دې مصيبتونو د عبدالرحمٰن خان په خپله عقيده ثابت قدم پاتې کيدل، او د مـخـکـښـې تـګ کـوشش کول، شاه بخارا ته د عبدالرحمٰن خان د ملاقات دپاره خط ليکل او د شاه بـخـارا انـکـار کـول، د شـاه د طرف نه د عبدالرحمٰن خان سخته نګراني کيدل، او د دهٔ په لار کښې قسـم قسـم بنديزونه راوستل، د ډيرو تکليفونو او مصيبتونو نه پس د عبدالرحمٰن خان د بدخشان په اکثـرو ځايـونـو قابض کيدل، او د مخالفو طاقتونو په ډيرې خوشحالى سره مقابله کول، خصوصاً د شهزاده حسن سره مقابله کول او کاميابي حاصلول.

پـه خـوجن کښې د دريو ورځو د قيام نه پس زهٔ بيا پخپله لار روان شوم زما نيت دا وهٔ چې قـوقـنـد تـه لاړ شـم ليکن چونکې زهٔ خبر شوم چې درې تولې د واړرو نه ډکې دي له دې کبلـه مـا هـغـه لار پـريـښـوده او يـورا تپـه (پـنـبـه فـروشـي) طرف ته روان شوم. ما يو قاصد د ميـر جهـاندار شاه زامنو ته (چې په قوقند کښې وو) سره د څلورو زرو روپو وليږلو او ورته مې ووې چې زهٔ يورا تپه ته روان يم ليکن تاسو هم په قوقند کښې تر هغې پورې پاتې اوسئ تر څو چې مـا تاسو ته بيا ليکلي نهٔ وي. تاسو ته به ياد وي چې ميرجهاندار شاه زما سخر وهٔ شير علي هـغـه د ملک نه شړلے وهٔ د هغهٔ زامنو چې چاته ما دا خط ليکلو هغوي خپل پلار وژلے وهٔ او په دې روسيانو هغوي ګرفتار کړي وو ليکن درې کاله پس هغوي زما په وجه رها شول ځکه چې ما د هغوي د نيک چلنى ضمانت ورکړے وهٔ.

د ورومبـى ورځـې د مـزل نه پس زهٔ بيماؤ ته ورسيدم چونکې تيارهٔ وه او ختمې وے او زهٔ نـاواقـفه سړے وم له دې کبله زهٔ يو دکان ته لاړم او ورته مې ووې چې ما په طور د يو ميلمه پـريږدئ ځکه چې زهٔ يو اسلامي سردار يم هغوي ماته په مهرباني پَخير راغلے ووئيلو او هر يو کـس زمـا دوه دوه سوارهٔ خپلو خپلو کورونو ته بوتلل. او يو کس زهٔ روان کړم. هغوي ماسره ډيره همدردي وکړه او سبا سحر ئ مونږ له زمونږ د سفر دپاره ډوډۍ او نور خوراک راکړو. د دوؤ ورځـو د مزل نه پس زهٔ يورا تپه ته ورسيدم او هلته په يوه سرائ کښې ديره شوم. د هغه ځاے هندوان باشنده ګان راغلل او ماته ئ ووئيل چې زمونږ کورونه تا دپاره زيات مه زون دي او دغـه شان نورو ډيرو سوداګرانو چې د چا سرائ وے هم زهٔ مدعو کړم. ما معذرت وکړو او ورتـه مې ووې چې ما معاف کړئ ليکن هغوي اصرار وکړو او ما خپل يو څو افسران د ځان په ځاے واستـول. زمـا يو دوست چې هغه هم سوداګر وهٔ چې زما د راتلو نه خبر شو نو راغلو او مـاتـه ئ ووې چـې زما ميلمه شه او زهٔ مجبور شوم چې د هغهٔ دعوت منظور کړم. ما فوراً د ترهٔ زامـنو ته خط وليکلو او ورته مې ووې چې بلخ ته روان شئ او په هغه هداياتو عمل وکړئ چې

کوم ما په تاشقند کښې د هغوي دپاره ليکلي وو. زۀ په يوراتپه کښې دولس ورځې پاتې شوم او خلعتونه او نور ضروريات مې په بيعه واخستل او سوداګرانو ما سره دې کښې ډير مدد وکړو.

زۀ د دې ځاے نه دره اوشي ته روان شوم چې په يو غرۀ تيريږي او هر څوک چې د سمرقند نه راځي نو ضرور به هم په دې لاره تيريږي. دا دره د حصار او د قولاب په خوا کښې تلې ده او د ډيرو درنو واؤرو په سبب په ژمي کښې ناقابل ګزر ده. ما هم دغه لار بدخشان ته د رسيدو دپاره واخسته. ليکن ما وليدل چې دا غر دا شان د واؤرو په سبب تک سپين دے لکه د چرګې اګۍ. په بله ورځ مونږه د دې غر ويخ ته ورسيدو. دا غر دومره وچت دے چې ما سره دا ويره وه چې شايد مونږ هيڅرې د دې سوکې ته هډو ونۀ رسو ولې ما په خداے توکل وکړو او مونږه په بره ختلو لاس پورې کړو. هر کله چې مونږه سوکې ته نزدې ورسيدو نو ما وليدل چې يخني ډيره د شدت وه ځکه چې سخته سيلۍ چليده واؤره زمونږ تر زنګنونو پورې وه. مونږ اسونه خپل مخکښې روان کړل او په بره ختلو د امداد دپاره مونږ د هغوي لکو پورې ونښتو. هر کله چې مونږ درې يا څلور ميله بره لاړو نو زما نوکران او سرې د يخنی په سبب ووېريدل ليکن ما هغوي ته د مخکښې تلو ډاډګيرنه ورکړه او په هغوي کښې يو څو تنه ډيرې خرابې طريقې باندې يخ ووهل. ما خپل مؤذن ته حکم وکړو چې دخداے پاک نوم ياد کړه هغۀ اووۀ ځله د خداے نوم ياد کړو او خداے پاک دا شان فضل وکړو چې سيلۍ بنده شوه او يخني ډيره کمه شوه. دغه شان خداے پاک زمونږ د عقيدې په سبب زمونږ ځانونه بچ کړل. د اس د لکۍ رابنکلو په وجه زما داوړه اوږې دا شان خوږيدې لکه چې بې ځايه شوې وي. ليکن زۀ مخ په وړاندې تلو باندې مجبور وم. په سلو کسانو کښې چې کوم ما سره روان شوي وو يو زۀ او لس تنه نور سر ته ورسيدو زۀ دومره ستړے شوے وم چې ما خپلې پښې نۀ شوې خوځولې. له دې کبله زۀ به په واؤره کښيناستم او ځان به مې خوېئولو او په وړاندې به کوزيدلم زما پنځۀ ملګري زما نه مخکښې ويخ ته ورسيدل او څۀ وخت چې زۀ هم هغوي له ورسيدم نو ما وليدل چې درې سوه سرې سره د لرګو راغلي دي هغوي لرګي زمونږ د توديدو دپاره بل کړل هغوي بيا زۀ خپل کور ته بوتلم او په هغوي کښې ډير کسان په خپلې رضا په هغې غرۀ باندې وختل چې زما نورملګري ځان سره راولي. دا قريباً د نمرخاتۀ وخت وۀ چې زۀ دې کلي ته ورسيدم او چې زۀ د خپل اس نه کوز شوم نو زۀ دومره ستومانه شوے وم چې زۀ بېخوده شوم د کلي خلقو زۀ په يو کور کښې چې ما دپاره ګرم کړے شوے وۀ په يو کټ واچولم او زۀ تر نمرپريواتۀ پورې اودۀ شوم او هر کله چې زۀ راويښ شوم نو زما جوړونو سخت درد کولو او په مشکله زۀ پياده تلے شوم. زۀ خبر شوم چې زما ټول سرې په حفاظت سره راغلي دي. او ما د هغه کلي هر يو سرې له يو يو پونډ او د هغوي ملکانو له مې پنځۀ پنځۀ

پوندړه سره د خلعتونو ورکړل په دې هغوي ډير خوشحاله شول.

مونږ په دې کلي کښې لس ورځې پاتې شو او په دې عرصه کښې زما ټول سړي ښۀ تندرست شو ما تپوس وکړو چې آيا زۀ حصار ته په څۀ طريقه رسيدے شم. ليکن هر کله چې ما ته دا ووئيلے شو چې په مخکښې څلور نور غرونه دي نو زۀ سمرقند طرف ته روان شوم په دې لاره صرف يو غر چې تيلگر نومے ئ وۀ په مخه راتلو. ليکن لس نور مشکل ځايونه پکښې وو چې د هغې نه پورې وتل ضروري وو يعنې فنوا، پُل خشک، ورزي منار، لق لق، پسخنده، مومن او جنت وغيره. د ټولو نه د دې اخري ځاے متعلق خلق وائي چې په دې ځاے کښې د پل صراط په کنده کښې د غورځيدو ويره ده فرق پکښې دومره دے چې د پل صراط په کنده کښې اور دے او په جنت کښې واوره ده. زۀ د دې ځايونو نه ډير په مشکله او په ويره تير شوم او دوه شپې مې د پنج کنډ په کلو کښې وکړې. د هغه ځاے نه قره تراش اومفيان ته لاړم او هلته مې دوه ورځې ارام وکړو. ما ځان سره د خواجه اقرارولي د روضې مبارکې نه يوه جنډه واخسته د دې متعلق يو څو کاله وړومبے ما يو عجيب و غريب خوب ليدلے وۀ. د خواجه روح ماته حضور شوے وۀ او ماته ئ ووئيل چې زما خوږه زويه زما د مقبرې نه د ټولو نه وچته جنډه راواخله او هر کله چې تۀ افغانستان ته ځے نو دا ځان سره يوسه دا به تاته کامراني او کاميابي درکړي. ما د دوۀ پسانو غوښه د خداے په نوم او د خواجه په روح بخښلې وه او د هغۀ په ارواح مې يو څو نفل هم کړي وو. دا جنډه ما پرانسته او شهر سبز ته روان شوم او جوز نومے کلي ته ورسيدم. د هغه ځاے گورنر ماته په خير راغلے ووې. هغۀ له وړومبے د شاه بخارا نه يو خط راغلے وۀ چې تۀ ټولٌ خلق منع کړه چې په عبدالرحمٰن باندې څوک د خوراک سامان خرڅ نۀ کړي. ځکه چې هغه د روسي حکومت نه تښتيدلے دے. گورنر زما په ډيرې خوشحالۍ استقبال وکړو او وې وئيل چې زما کافر بادشاه ماته دا هدايات راستولي دي او د دې دپاره زۀ مجبور يم چې له تانه لرې اوسم ما هغۀ ته سوال جواب واستولو چې زما هيڅ فکر مۀ کوه خداے پاک زما په مرسته دے. ماته پته ولگيده چې د کلي يو سړے هم ما ځان ته نۀ پريږده. په دې وجه زۀ په جومات کښې ديره شوم او خپلو سړو ته مې ووئيل چې د سيند په غاړه ديره شئ مونږ د زمکې نه واوړه لرې کړه او هلته مو اسونه وتړل. او د جومات سر ته وختو او د هغه ځاے مو د کلي خلقو ته په زوره اواز وکړو چې کۀ چرې تاسو په مونږه د خوراک سامان خرڅ کړئ نو مونږ به ستاسو مشکور يو ولې کۀ نۀ خرڅوئ نو مونږ به مجبور يو چې په زور ئ درنه واخلو. کۀ چرې تاسو جنگ کول غواړئ نو مونږ جنگ ته هم تيار يو. تاسو مسلمانان يئ او مونږ هم مسلمانان يو نو دا به څومره ښه خبره وي کۀ چرې مونږه په خپلو کښې دوستان پاتې شو. او د خپل ځان او د اسونو دپاره لهٔ تاسو نه د خپل خوراک سامان په بيعه واخلو. بيا ما خپلو نوکرانو ته حکم وکړو چې هر کلي ته ورشئ. دې

خـلقو قـرآن شـريف راوړو او ماته ئ ووې چې مونږ مۀ تالا کوه مونږ به څۀ چې تاسو غواړئ هـغه به په تاسو خرڅ کړو ځکه چې اوس مونږ سره يو معقول عذر د بادشاه د حکم د نافرمانۍ دپاره پيـدا شـۀ. هـغـوي مـونږ له خوراک راوړو او ماته ئ ووې چې مونږ ستا د نيکۀ دوست مـحـمـد خان خيرخواه يو او خوشحاله يو چې ستا خدمت وکړو ما هغه شپه په ارام سره د هغه کـلـي مشرانو سـره تيـره کـړه. او بـلـه ورځ شهـر سبز تـه روان شوم چې د خواجـه ام خانـه اميـرالـمؤمـنيـن روضـه مبـارکـه دے ښـار پـورې ده زۀ هـلته ديره شوم او شاه بخارا ته مې په دې الفاظو خط وليکلو:

"زۀ سـردار عبدالرحمٰن په خدمت کښې د خپل معزز ترۀ دا ليکم چې زۀ دې مبارک ښـار ته راغلے يم او افغانستان ته مې د تلو نيت کړے دے کۀ چرې تۀ ماته اجازت وکړې نو زۀ به راشم او ستا سلام به وکړم او د هغې نه پس به خپل ملک ته روان شم.،،

په بله ورځ هغۀ ماله جواب راکړو :

" د خدائے دپاره ماله را نۀ شے زۀ تا نشم ليدے."

پـه دې مـا خپـل ځـان سره فکر وکړو چې د دې سړي مخ د کتو لائق نۀ دے ځکه چې دې د روسيـانـو مـلـګرے دے. زۀ روان شوم او وړومبے نيت مې وکړو چې شهر سبز ته ورځـم خـو بيـا زۀ يـاکـوبـاغ له لاړم په دې خيال چې دا به ښه وي چې د غرونو په ويخ ويخ کښې تير شـم. مـونږ چې قريباً نيمه لار ووهله نو مونږ په لرې فاصله کښې دوه يا درې زره غوا وليدې چې څـر کـوي زمـا سـړو دا خيال وکړو چې شاه بخارا زمونږ برخلاف د جنګ دپاره سوارۀ راستـولـي دي لـه دې کـبـلـه مـونږ بل يلو مخ کړ او په بله لار باندې ښار طرف ته روان شو. اګـرچې زما دا نيت نۀ وۀ چې ښار ته وردننه شو چې قريباً څلور ميله نور وړاندې لاړو نو مونږ دا څـاروي مـونږ طرف ته په راتلو باندې وليدل. د ښار دروازې بندې وے د پاره د دې چې زۀ ښـار تـه دننه نشم زما سلګونه نوکران او درباريان چې ما په سمرقند کښې پريښي وو هغوي د شاه بخارا ملازمت اختيار کړے وۀ او هغۀ دا خيال کولو چې کۀ چرې زۀ دې ښار ته لاړ شم نو هـغـوي بـه زمـا نـوکـري پـريږدي او عبدالرحمٰن سره به لاړ شي دا وجه وه چې هغۀ ماته خط وليـکلو چې تۀ هلته مۀ ځه ولې هغۀ زما سړو ته وئيلي وو چې هغه نن سبا راتلونکے دے. په دې سبـب هـغـوي ټول يو ځاے شو او ماله ئ يوه ډوډۍ وکړه هرکله چې ما وليدل چې د ښار لويې دروازې بـنـدې دي نـو زۀ يوې بلې دروازې له لاړم چې هلته ما د خوش قسمتۍ نه خپل يو زوړ نـوکـر وليـدو او د هغۀ په لاس مې يوه چيټۍ په ښار کښې خپلو نوکرانو ته وليږله او هغوي ته مـې ووې چـې مـا سـره شـامل شئ ځکه چې زۀ افغانستان ته د تلو دپاره ستاسو په انتظار کښې نـاسـت يـم. ولې کۀ چرې نن ماسپښين پورې را ونۀ رسيدئ نو زۀ به يرتيپ ته روان شوم. دې سـړي زما چيټۍ جنرل نظير او قاضي جان محمد او نورو مشرانو له يوړه ولې هغوي زما قاصد

گرفتار کړو او دا چیتې ئ زما د نوکرانو نه چې په ښار کښې وو پته کړه دغسې ما بې سوده د هغوي انتظار وکړو او اخر کار یرتیپ ته روان شوم. دې ځایے ته د یوې ورځې مزل وۀ او هلته زۀ درې بجې د شپې ورسیدم په دې ځایے کښې ما درې ورځې قیام وکړو او دلته زما لس نوکران چې د شهر سبز نه راتښتیدلي وو ما سره یو ځایے شو. هغوي ماته ووې چې مونږ ستا چیتې نۀ ده لیدلے په دې زۀ د خپلو افسرانو په دې بزدلانه کارروایی مایوسه شوم.

درې ورځې پس زۀ کالته مینار نومے ځایے ته روان شوم شاه بخارا سل سوارۀ زما د نقل و حرکت د نگرانی دپاره رالیږلي وو لیکن هرکله چې زۀ ماښام ترغونې دې ځایے ته راورسیدم نو ما هغوي د سیند په غاړه ولیدل ما خپلو سورو ته حکم وکړو چې وولې ئ او په هغوي کښې لس یا پنځلس سړي مړۀ او زخمیان شول او نور وتښتیدل. د دې واقعې نه پس ما دا ضروري وګڼل چې یو دم وړاندې تلل پکار دي او اگر چې ډیره یخني وه ولې زۀ سمدستي روان شوم او درې پړاوه چې د هغو نومونه کره خاه، چلک شوراب او بند وو مې په یو ځایے ووهل او بندۀ ته په بله شپه اودۀ کیدو وخت راورسیدم او د هغه ځایے نه د سر آسیا ،یورشي، او د ریګار په لاره حصار کښې داخل شوم ما واوریدل چې د بادشاه زوے په ښار کښې دے خو چې زما د راتلو نه خبر شو نو ښار ئ پریښوډو او په غرۀ باندې قره داغ نومے یو ځایے ته لاړو په ټول حصار کښې صرف یوځایے پاک او سوتره وۀ او هغه د شرابیانو او چرسیانو سرائ وه. او زۀ هلته دیره شوم. چونکې بادشاه او د هغۀ زوي ما سره ډیره بدسلوکي کړې وه او د خپل وطن غریبان به ئ تنګول نو زما په زړۀ کښې دا خیال پیدا شو چې د بادشاه خومره اسونه په دې ښار کښې دي او دغه شان سول افسران چې دي د هغوي اسونه وتښتوم د دې غرض دپاره ما سردار عبدالله خان ته ووې چې تۀ دې خلقو ته induwایه چې زۀ تاسو سره یوه پټه جرګه کوم دا مې د دې غرض دپاره وکړل چې دې خلقو له زۀ د دې خبرې تسلي ورکړم چې ستاسو بادشاه درحقیقت زما دوست دے. لیکن دا سردمهري هغۀ ته ما د چل ول دپاره ښودلے وه ځکه چې هغه د روسیانو نه ویرېږي. او کۀ چرې هغه ما سره ډیر د دوستی سلوک وکړي نو روسیان به په ځان شکمن کړي سردار هم دغه شان چیتې هغوي ته ولیکله او ما دا شان تجویز جوړ کړو چې زۀ د یوې پردې شاته پټ شم او هرکله چې دا د سول افسران د عبدالله خان لیدو له راشي نو هغه به پرده یو خوا ته کړي او ماته به سلام وکړي هغوي ته به ورومبے دا ووائي چې دا عبدالرحمٰن دے نو بیا به هغه (سردلر عبدالله خان) د هغوي د اسونو واګې ونیسي او ماته به ئ په طور د پیشکش راکړي. او وبه وائي چونکې تۀ یو شهزاده ئ نو دا سرداران خپل اسونه تاته په طور د تحفې پیش کوي. چنانچه دا ټول کار لکه چې څنګه ما تجویز کړے وۀ وشو. او په دې ډول باندې ما د هغوي نه شپږ اسونه واخستل او دریائے آمو ته روان شوم. ولې ورومبے مې بادشاه ته د هغۀ د مهربانی او د دې دپاره چې د هغۀ

سـرداران‌و ماته تحفې پیش کړي دي د شکرېې خط ولیکلو او ورته مې ولیکل چې زهٔ به تاته په کـابـل کـښـې هرکلے ووایم کهٔ چرې روسي حکومت سره ستا بې اتفاقي پیدا شوه. ما یوه شپه پـه حصار شادمان کښې تیره کړه بله مې تنگي کک کښې او د کورگان تپې په لاره لاړم چې هـلتـه ما شپږ ورځې ارام وکړو او خواجه گلگون ته ورسیدم هلته په ما باندې د سک بیماري راغله لیکن خدایے پاک زهٔ په دریو ورځو کښې په دارو جوړ کړم.

دلتـه مـاتـه پـه تپوس معلومه شوه چې شهزاده حسن ( د میر شاه زوے ) او د هغهٔ ترونو میـر یـوسف علي او میر نصر الله د رستاق، قطغن او د بدخشان ملکونه په خپلو کښې به حصهٔ مساوي تـقسیـم کـړي دي. اوشهزاده حسن په فیض اباد او میر یوسف علي په رستاق او میر نصـرالله پـه کُشـم حـاکـمان دي. ما شهزاده حسن ته یو خط د میر عالم (چې زما نوکر وهٔ) په لاس ولیـږلـو او ورتـه مې ووې چې زهٔ خواجه گلگون ته راورسیدم. دا به لوستونکو ته یاد وي چې دا میر زما د سخر ورور وهٔ.

د دې چیـټـې د لیـږلـو نـه پس زهٔ سجاه آب ته روان شوم چې د دریائے آمو په غاړه د رستاق بـالـمـقـابـل یو کلے دے. زهٔ دې کلي ته د دوؤ ورځو د مزل نه پس راورسیدم او زهٔ د سیند نه په دریمه ورځ پورې وتم اوماښام رستاق کلي ته ورسیدم. شهزاده حسن زما نزدیکت تـه پـه ښهٔ نـظـر ونهٔ کتل بلکې زما قاصد ئ گرفتار کړو او ماته ئ ولیکل چې د دریائے آمو نه راپـورې نـهٔ وخـې ځـکـه چې مونږ قسم خوړلے دے چې کهٔ چرې زمونږ د ملک په یوه ټکړه بـانـدې چا پښتون پښه کښیښوده نو مونږ به د زمکې هغه ټکړه سره د ستا لکه د یو پلیت ځیز پشـان د خپـلـه مـلـکـه بهر ته وغورځوو دا چیټې ماته په سجاه آب کښې راورسیده ما د هغې جـواب دا رنگ ورکـړو اے بې وقوفه او نا شکرگزار بزدله ما تهٔ او ستا ورونه تر ډیرې مودې پـورې لـوي کـړي يئ او ما ستاسو بزدل کور سره په دې نیت خپلوي وکړه چې د ضرورت په وحت کښې به تاسو زما په کار راشئ ما ته اوس خپله غلطي معلومه شوه او تاسو مې په اصلي رنگ کښـې وپـیـژنـدئ کهٔ زهٔ د مـرگ نه ویریدې نو زهٔ به تر دې ځایه پورې نهٔ وم راغلے. په سبـانـے ورځ بـه د دې خـبـرې فـیـصـلـه وشي چې په مونږ کښې ځوک مضبوط دے او ځوک کمزورے.

هـم په هغه شپه شهزاده یو زر سوارهٔ د دې غرض دپاره مقرر کړل چې په سیند باندې ځـوکـی کـوي او مـا د پـورې وتلو نه بندکړي هرکله چې بالکل تیارهٔ شوه نو زما د گارډ شلو سړو په هغوي باندې د دې غاړې نه ډزې وکړې او هغوي په دې خیال چې مونږه ډیر سړي یو او په هغوي باندې حملې ته تیار یو وتښتیدل او شپږ تنه مونږ د هغوي نه قیدیان ونیول. ما سره صرف سل سوارهٔ د جنگ دپاره او لس د جنډو وغیره وړلو دپاره وهٔ . او په بله ورځ د دشمن دولس زره سړو سره مقابله پریوته. ماته معلومه وه چې هیڅ دلاوري هر ځومره کهٔ ډیر وي خو

د دومره بیشماره سړو برخلاف نشي کامیابیدې لیکن چونکې ما د خدایے پاک د خدمت دپاره خپل ژوند وقف کړے وۀ او د قرآن شریف هغه ټول ایتونه راته یاد وو چې په کوم کښې هغه سړو سره چې ځوک خپل ځانونه په تکلیف کښې قربانوي د انعام وعدې شوې وے. له دې کبله ما ته لس زره سړي او یو لک سړي ټول برابر وو د خدایے پاک مینه زما په زړۀ کښې وه او ما د هغې مینې دپاره جنګ کولو او په دې سبب زۀ خوشحاله وم چې سبا به زۀ د خدایے په خدمت کښې مرم ماته دا پته وه چې کۀ زۀ دا ځل بچ شوم نو د بدخشان او قطغن خلق به ما مړ کړي او کۀ چرې زۀ د هغوي نه هم خلاص شوم نو د انګریزي فوځ مقابله به کوم. په ټولو خبرو چې ما غور کولو نو ماته د ژوندون ډیر کم امید وۀ کۀ چرې خدایے پاک یو عاجز انسان بچ کول غواړي نو هغۀ له د ټولې دنیا نه ویره کول پکار نۀ ده زما زړۀ دومره مضبوط وۀ چې کۀ د ټولې دنیا مقابله راته پیښه شوې وے نو هغوي به ماته دا شان ښکاره شوي وو لکه چې چینجي د چا د پښو د لاندې وي. زۀ دا د خدایے په نوم وایم دا هسې بهادري نۀ ده بلکې یو خاص احساس دے چې هغۀ ماله راکړے دے زۀ ټولو صادقانو ته دا صفا صفا وئیل غواړم چې ماسره څۀ څۀ واقعات پیښ شول دا زما د ژوند تجربه ده چې کۀ ځوک د خدایے پاک په کار کښې په ایمانداری زړۀ ولګوي نو هغه به یقیناً هغوي له کامیابي ورکړي زما د دې عقیدې دا نتیجه ده چې زۀ نن ورځې بادشاه یم.

سبا سحر مې توکل په خدایے وکړو او د شهزاده حسن د فوځ مقابلې ته ووتم دولس میله مزل مو وکړو او ما دولس زره سړي د دشمن سره د دولسو نشانونو ولیدل چې ما طرفته راروان دي. هرکله چې مونږ یو داسې مقام ته ورسیدو چې زما او د هغوي تر منځه یو میل فاصله پاتې شوه نو زۀ حیران پاتې شوم چې دشمن په مختلفو اطرافو په خوریدو ورو ورو لاس پورې کړو لکه چې په هغوي چا جادو پوک وهلې وي. زۀ هیڅ پوهه نۀ شوم چې دا څۀ چل وشو په دې اثنا کښې د بدخشان د میر چې د شهزاده حسن تربور وۀ د سورو یوه دسته د بل طرف نه راروانه وه او د خدایے پاک ثنا ئې وئیله ما خپلو سورو ته ووئیل چې هم دلته ودریږئ چې کوم ځاے یئ او زۀ یو څو سردارانو سره د دوئ په طرف وړاندې شوم چې پته ولګوم چې د دې سورو نیت څۀ دے چې زۀ هغوي ته راورسیدم نو هغوي ماته ووئیل چې مونږه د عبدالرحمٰن سلام له راغلي یو ما هغوي ته په جواب کښې ووئیل چې کۀ چرې تاسو د هغۀ اطاعت منلو ته تیار یئ نو تاسو هغۀ له په وړو وړو ټولګو کښې راشئ هغوي یو څو مشران منتخب کړل او ما سره واپس راروان شول په دې ما هغوي ته ووې چې زۀ سردار عبدالرحمٰن یم هغوي حیران پاتې شول او ماته ئې سلام وکړو او رانه ئې تپوس وکړو چې کۀ ستا رضا وي نو مونږ به د شهزاده حسن فوځ پسې لاړ شو او مړۀ به ئې کړو ما ورته په جواب کښې ووې چې زۀ د مسلمانانو قتل له نۀ یم راغلے بلکې د جهاد دپاره راغلے یم ما هغوي له تسلي ورکړه

چې دا قسم سوارهٔ چې په تیښته روان دي کهٔ چرې دوئ زما دوستان شي نو زهٔ به دوئ څان سره د انګریزانو برخلاف د جنګ دپاره روان کړم.

زهٔ رستاق کښې داخل شوم او د ښار نه بهر د میر په قلا کښې مې ډیره ونیوه او هم په هغه ځاے کښې به مشران زما د ملاقات دپاره سره د تحفو او دوستانه اطمینان ورکولو دپاره راتلل ما به هغوي له خلعتونه ورکول او هغوي زما وفادار رعایا شول. هم یو هوښیار سړے پوهیدے شي چې څرنګ ما په یوه ورځ کښې د شلو زرو سرو زړونه مسخر کړل څکه چې د خلقو زړونه د خداے پاک په لاس کښې دي او هغهٔ د هغوي زړونه په دغه ورځ ما طرف ته راواړول. خلقو او مشرانو په خپلو کښې یوه جرګه وکړه او ماله ئ تحفې راوړې ما هغوي ته حکم وکړو چې دوه زره سوارهٔ او یو زر ملیشیا په یو څو ورځو کښې راجمع کړئ او فیض اباد ته ئ د میر بابا جان د کمان لاندې واستوئ. د دې حکم هغوي تعمیل وکړو او دسته هغې قاصد سره روانه شوه چې چا زما دپاره وړومبے دا کار کړے وهٔ اوشهزاده حسن هغه قیدي کړے وهٔ هغهٔ اوس یوه چیټهٔ څان سره واخسته چې په هغې کښې ما دا شان لیکلي وو:

"اے مسلمانانو زهٔ د افغانانو برخلاف جنګ دپاره نهٔ یم راغلے څکه چې هغوي سوچه مسلمانان دي بلکې زهٔ د غزا دپاره راغلے یم په دې وجه دا ضروري ده چې تاسو ټول زما د احکامو تعمیل وکړئ درحقیقت د خداے او د هغهٔ د پیغمبر صلي الله علیه وسلم احکام دي مونږه ټول د خداے پاک بنده ګان یو لیکن غزا په مونږه ټولو فرض ده."

ما په دې چیټهٔ دا شان دستخط وکړو د یو مسلم د طرف نه او وهٔ مې لیکل چې امید دے تاسو به ما سره د دوستانو په شان کار وکړئ. دا چیټهٔ د خلقو په نوم وه. یوه بله چیټهٔ مې د مشرانو او میرانو په نوم ولیکله او میر بابا له مې ورکړه د هغې مضمون دا وهٔ:

"میر شهزاده حسن د فیض عام خلقو او سردارانو زهٔ تاسو ته خبر درکوم چې زهٔ د فیضه د فیرنګیانو د لاس نه د ازادولو دپاره راغلے یم کهٔ چرې زهٔ په دې کار کښې په صلح کامیاب شوم خو ښه په ښه ګنې نو مونږ به اورمرو جنګ کوؤ. تاسو ټول میران یئ او پکار نهٔ دي چې تاسو د سوچه مسلمانانو ملک د فیرنګیانو په لاس کښې پریږدئ. کهٔ چرې هغوي مونږ نه ملک وګټلو نو زمونږ نوم به ورک شي او د دنیا خلق به وائي چې په میرانو کښې نهٔ شرم وهٔ او نهٔ قومي ننګ او د بې اتفاقۍ په سبب د هغوي نه هم ملک لاړو او هم مذهب. او میرانو زما نصیحت واورئ کهٔ چرې تاسو زما خبره وانهٔ وریده نو بیا دا زما ښکاره فرض دي چې په تاسو هم زهٔ غزا وکړم څکه چې تاسو به بیا کافر یئ. د دې دپاره په زړهٔ کښې فیصله وکړئ چې یا خو تاسو د خداے پاک او د محمد صلي الله علیه وسلم په مرسته ودریږئ او یا د جنګ دپاره تیار شئ."

سردارانو او خلقو چې زما چیټهٔ ولوسته نو خپل میر له لاړل او ورته ئ ووې چې دابه

ټيک وي کۀ مونږ د عبدالرحمٰن اطاعت قبول کړو او په دې طريقه مونږ خپل ملک د فيرنګيانو د لاس نه بچ کړو. ليکن د هغوي مير په جواب کښې ووې چې زۀ د کشمير د سکهانو دوست يم او په نسبت د دې چې زۀ د يو مسلمان اطاعت قبول کړم دا غوره ګڼم چې هلته لاړ شم. د دې په جواب کښې د قوم مشرانو ووې چې کۀ چرې مونږ ته دا معلومه وے چې تۀ د هندوانو يو سړے ئې نو مونږ به تۀ هيچرې مير کړے نۀ وے. او د دې دپاره دا به ښه وي چې تۀ کشمير ته ځومره چې د تا نه زر کيدے شي لاړ شے. دغه رنګ دا احمق مير د چترال او د لداخ په لاره خپلو بچو او د کور خلقو سره کشمير ته لاړو. ليکن لږه موده پس هغه مړ شو او خپل ټول د کور خلق ئې بې ماله پريښودل. د دې برخلاف د قام خلقو زما اطاعت قبول کړو.

د دې نه يو څو ورځې پس ما يوه چيټئ مير سلطان مراد چې د قطغن مير وۀ ته وليکله چې زۀ د افغانستان ملک د فيرنګيانو د لاس نه د ازادولو دپاره راغلے يم او د هغۀ نه مې تپوس وکړو چې آيا ماته به په خپل ملک کښې د تيريدو دپاره لار راکړې او ما سره به د سړو او د روپو امداد وکړې؟ هغۀ ماته دا شان جواب راکړو:

" په مونږ کښې نۀ د انګريزانو د خفه کولو او نۀ هغوي سره د جنګ کولو طاقت شته د دې دپاره مونږ تاله په خپل ملک کښې لار نشو درکولے ." د دې نه ما هغۀ له دا جواب ورکړو چې په دې قسم فيصله کولو سره تا ځان کفارو سره يوځاے کړو نو ماله پکار دي چې تا سره هم غزا وکړم. ليکن چونکې ما د هغۀ رائۀ نۀ شوه بدلولې د دې دپاره ما قريباً يو زر وارۀ خطونه د بلخ د فوځ په نوم باندې وليکل . د دې چيټو مضمون دا وۀ :" اے د افغانستان خلقو، زۀ تاسو خبروم چې زۀ قطغن ته درتلۀ غواړم. هر وختې چې راغلم نو ستاسو مير سلطان مراد به تاسو ما سره کيدو ته پرې نۀ ږدي."

دا اشتهارونه ما د يو سړي په لاس وليږل چې د فقيرانو په جامه کښې وۀ او هغۀ ته مې ووې چې دا اشتهارونه پنه جوماتونو، په کوڅو او په چاړو کښې وويشه خلق به پخپله هغه بيامومي او زما دپاره به مير سلطان سره ووينې. ماله اوس د بدخشان د معاملاتو ذکر کول پکار دي لکه چې څۀ رنګ ما وړومبے ذکر کړے دے ما د خپل ترۀ زامنو سردار سرور او سردار اسحاق له د هغوي د لارې خرڅ، شپيتۀ کارتوسي دنباله ټوپکونه، دولس زره کارتوسونه او د ترکمان خلقو په نوم خطونه ورکړي وو ما هغوي ته دا هدايات ورکړي وو چې د سمرقند نه د ترکستان په طرف روان شئ.

ماله دلته د دې خبرې ذکر کول هم پکار دي چې د وردګ قبيلې يو سړے غلام حيدر نومے د شير علي په زمانه کښې د کرنيلئ عهدې ته رسيدلے وۀ او هر کله چې يعقوب امير شو نو هغۀ هم دغه عهده لرله. هر کله چې يعقوب سر لوي کيوګنري کابل ته په طور د انګريزي

سفیر راوستو نو هغهٔ غلام حیدر د بلخ وائسرا ے او ګورنر جنرل مقرر کړو. دې غلام حیدر په خپل نوي حیثیت کښې قادر خان نومے یو قزلباش د شبرغان ګورنر او یو سړے غلام معز الدین انصاري د سرپل ګورنر او محمد سرور د اخشي ګورنر مقرر کړل. هرکله چې زما د ترهٔ زامن سرور، اسحاق او عبدالقدوس ترکستان ته راورسیدل نو غلام حیدر قریباً دوه زره یا درې زره قزلباش سوارهٔ بغیر د خلقو د علم نه په خاموشی سره ورواستول او هغوي ئ قیدیان کړل. زما د ترهٔ زامن د دې نه په وخت خبر شول لیکن چونکې هغوي جنګ نشو کولے نو هغوي د بلخ لاره پریښوده او د شبرغان طرف ته روان شو. او د هغه ځاے نه ئ ګورنر سره چې هغه هم قزلباش وهٔ خط و کتابت شروع کړو. ممکن ده چې دې ګورنر هغوي له د امداد څهٔ امید ورکړے وے ځکه چې هرکله شبرغان له ورسیدل نو ناوخته او تیارهٔ وه. سردار دا اراده ظاهره کړه چې زهٔ ښار ته د ګورنر د لیدو دپاره ځم. د هغهٔ ورور ټولو هغهٔ ته ووې چې دا د بې وقوفی کار مهٔ کوه. لیکن هغهٔ د خپل یو نوکر شربت نومے د خوست په خلې پسې لاړو. هغهٔ دهٔ ته ووې چې دا خلق به تا ضرور دننه قلا ته پرېږدي او کهٔ نهٔ وي نو زهٔ ئ اولم. په دې سبب هغه او د هغهٔ نوکر یواځې قلا ته لاړل. د ښار دروازې له چې هغوي ورسیدل نو هغه ئ وډبوله او د دروازې څوکیدارانو چې تپوس ترینه وکړو نو هغوي ورته ووې چې مونږ د جنرل غلام حیدر خان د طرف نه د ښار ګورنر ته یو خط راوړے دے. هغوي ته سمدستي اجازت وشو لیکن د دروازې ګارډ سرور پیژندو او د هغهٔ نه ئ تپوس وکړو چې ستا ښار ته په راتلو کښې اصل مقصد څهٔ دے؟ هرکله چې سرور ټوله قصه بیان کړه نو د ګارډ افسر هغهٔ ته ووې چې پښې وباسه ګنې نو ګورنر به دې ګرفتار کړي ولې کهٔ چرې تهٔ سبا له خپلو سورو سره بیا راغلے نو زهٔ او دا خلق به ستا اطاعت قبول کړو. چونکې سرور ته پته وه چې ما بدخشان اخستے دے هغهٔ د ګارډ دې خبرې ته غوږ کښینښودو او وې وئیل چې ګورنر ماله دعوت راکړے دے او زما لاس پښې به ښکلوي. او په ډیره مینه به زما اطاعت قبلوي. مختصر دا چې څهٔ وخت هغه د ګورنر مخې له راغے او د هغهٔ لاس او پښې ئ وتړل او ډیر په خاموشی سره ئ هغه د یو کرنیل او د هغهٔ د سورو د پهرې د لاندې د دشت ارزانه په لاره مزار ته غلام حیدر خان سره واستولو. دوئ ټول ټولے سره د دې بدنصیب قیدي د سبا څیرې سره ده دادي ته ورسیدو او یو قاصد ئ وراندې غلام حیدر له سره د دې پیغام ولیږلو. جرنیل خپلو مشیرانو او سردارانو سره مصلحت وکړو او په دې نتیجه ورسیدل چې د ټولو نه ښه خبره دا ده چې سرور د دنیا نه فوراً ورک شي ځکه چې دا ویره ده چې کهٔ چرې په شبرغان کښې د هغهٔ د راتلو خبر خور شو نو هسې نه ازبک او د غرهٔ نور قبائل بغاوت وکړي. د دې فیصلې په وجه غلام حیدر خپل وزیر رضوان او یو درباري غلام معزالدین د سردار د قتل دپاره مقرر کړل. هغوي د دې حکم تعمیل وکړو او د سرور نعش ئ په ده دادي کښې د یو دیوال لاندې

ښخ کړو او د هغهٔ سر ئ غلام حیدر له د هغهٔ د حکم د تعمیل په ثبوت کښې یوړو۰

په دې اثنا کښې هر کله چې عبدالقدوس او اسحاق د خپل ورور بابت څهٔ نور څهٔ وانهٔ وریدل نو میمنې ته لاړل. د دې ښار والي چې دلاور خان ئ نوم وهٔ خپل ترکمان رعایا ته حکم وکړو چې دوئ قیدیان کړئ اوما له ئ راولئ. دوئ د دې نه انکار وکړو او وې وئیل چې دا د عبدالرحمٰن د تورهٔ زامن دي او تر مرگه پورې به ئ مونږ خدمت کوؤ او دوه زره کوره دې سردار سره یو ځاے شول لیکن چونکې گورنر دا غوښتل چې په څهٔ شان دوئ قید کړم. د دې دپاره هغهٔ هغوي په څهٔ بهانه هرات ته ولیږل چې محمد ایوب خان په هغه ځاے کښې وهٔ او هغهٔ هم دا کوشش کولو چې زهٔ هم دوئ قید کړم. غلام حیدر ته چې د سرور سر راورسیدو نو هغهٔ سلطان مراد ته ولیکل چې فوځ لګي شو او سرور ئ مړ کړو او زهٔ امید کوم چې تهٔ به هم عبدالرحمٰن قتل کړې. او یا ما له به ئ قید راولیږې. ولې سلطان مراد هغهٔ ته په جواب کښې ووئیل چې عبدالرحمٰن په بدخشان کښې دے او زما د وس نه بهر دے.

لوستونکو ته به یاد وي چې ما میر بابا فیض اباد ته لیږلے وهٔ. یو څو ورځې پس ما هغهٔ ته ولیکل چې تهٔ سره د فوځه رستاق ته واپس شه. او غرض زما د دې نه دا وهٔ چې دا دواړه فوځونه یو ځاے شي او زهٔ د قطغن په میرانو باندې غزا وکړم. ځکه چې هغوي دا نهٔ غوښتل چې مسلمانان دې په دنیا کښې ترقي وکړي. میر بابا ماته ولیکل چې دابه ښه وي چې تهٔ پخپله فیض اباد ته راشې او ځان خلقو ته وښیې او د دې نه پس بیا قطغن ته روان شې. په دې وجه زهٔ فوراً روان شوم او ځان سره مې میر محمد (چې ما د رستاق گورنر مقرر کړے وهٔ) او څهٔ مشران او دوه زره سوارهٔ واخستل چې مونږ آرګو نومے یو ځاے ته ورسیدو نو مونږ ارام وکړو هغه شپه زما چائے پخوونکي زهٔ راویښ کړم او ما ته ئ وې چې نیم بربنډ سړے چې په شکل کښې پاګل شان ښکاري او ستا د کتو اجازت غواړي. ما دا سړے راوبللو او هغهٔ ماله یوه چیټی راکړه چې د هغې مضمون دا وهٔ:

"زهٔ د دې چیټی لیکونکے یو پښتون سوداګر یم او دا مې اوریدلي دي چې میر بابا خان د بدخشان یو څو سردارانو او خپل سکتر دبیر سره مصلحت کړے دے چې تا ګرفتار کړي او فیرنګیانو له دې واستوي په دې طریقه به د بدخشان حکومت د مخکښې دپاره د هغوي په کور کښې پاتې شي. د خداے دپاره فیض اباد ته رانشے."

زهٔ ډیر ناقلاره شوم او ټوله شپه مې مختلفو تجاویزو باندې غور وکړو او سحر مې محمد عمر سره د رستاق د نورو سردارانو راوبللو او د هغوي نه مې صلاح واخسته هغوي چیټی ولوسته او په جواب کښې ئ ووئیل چې میر بابا یو ناشکر ګزار او بزدل سړے دے او دې کښې هیڅ شک نشته چې دا سوداګر په راستی دے او د هغهٔ خبره درست ده. محمد عمر ووئیل چې زهٔ خو همیش د میر بابا دشمن پاتې شوے یم او زهٔ فیض اباد ته نهٔ ځم ما په

جواب کښې ووئیل چې کۀ تۀ واپس تلۀ غواړې نو تلے شے لیکن زۀ پخپله لاره ځم ځکه چې زۀ د میر نه نۀ ویریږم له دې کبله ما هغۀ له رخصت ورکړو چې خپل سوارۀ ځان سره بوځه او رستاق د حملې نه محفوظ وساته او بیا هغه روان شو. ما عبدالله هم واستولو چې د دۀ نقل و حرکت ته گوره او ماته رپورټ راکره ما په خدائے توکل وکړو او پخپله لاره روان شوم چې یو څو میله لاړو نو مونږ رزگان نومے یو غرۀ ته ورسیدو هلته مونږ شپږ زره سوارۀ ولیدل چې میر بابا ئ مخکښې دے او هغوي مونږ طرف ته راروان دي. ما خپلو سورو ته ووې چې تاسو ودریږئ او زۀ وړاندې ورځم نو کۀ چرې تاسو ولیدل چې دا سوارۀ مونږ سره په خرابه طریقه پیش راغلل نو تاسو پرې ډزې وکړئ بیا زۀ په پویه مخکښې لاړم او هرکله چې زۀ پوهه شوم چې دوئ ما سره په مینه محبت پیش راغلل نو ما خپلو سورو ته اشاره وکړه چې راځئ ما سره یو ځاے شئ. ما د فیض اباد سورو سره خبرې وکړې او ورته مې ووئیل چې ما اوریدلي دي چې تاسو ډیر ښۀ سوراۀ یئ او زۀ به ډیر خوشحاله شم کۀ تاسو گھوړ دوړ وکړو. په دې هغوي گھوړ دوړ شروع کړو او ما خپلو سورو ته په پښتو کښې ووې چې میر نه تاؤ شئ په دې طریقه مونږ روان شو او میر زمونږ په منځ کښې وۀ تر دې چې مونږ فیض اباد ته ورسیدو او ما خپلو سورو ته حکم وکړو چې په قلا قبضه وکړئ او ما دیرش تنه سوارۀ په دروازه پهره دار مقرر کړل.

درې ورځې پس میر بابا له د غلام حیدر یو خط راغے چې تا ولې عبدالرحمٰن ما له قیدي نۀ دے رالیږلے هم په دغه ورځو کښې هغۀ له د شاه بخارا یو خط سره د خلعتونو، څلورو اسونو او سنهري سامان راغلو. شاه بخارا میر بابا ته دا لیکلي وو چې جنرل غلام حیدر زما خیرخواه دے او هغۀ ماته د خپل ملک د حواله کولو وعده کړې وه نو پکار دي چې تۀ سمدستي عبدالرحمٰن چې د روس نه راتښتیدلے دے د دې دپاره هر چا چې هغه قتل کړو نو سزا به نۀ بیامومي. میر بابا چې د خدائے نه منکر وۀ او ټول ایمان ئ په دولت مندو خلقو او د هغوي په دولت باندې وۀ زما برخلاف د بدخشان د خلقو په پاڅولو گوتې پورې کړې. یوه ورځ هغه ماله راغے او ما ته ئ ووې چې راځه چې ښکار له لاړ شو ځکه چې خواوشا کښې ډیر تنزري دي. ما د هغۀ خبره ومنله لیکن تپوس مې ترې وکړو چې فوځ به حسب وعده کله واپس کیدو دپاره تیار شي د دې په جواب کښې هغۀ ووې چې ما له شل زره پونډه راکړه چې خلقو له بدې ورکړم ولې ما هغۀ ته ووې چې زۀ روپۍ د انگریزانو برخلاف د جنگ د خرڅ اخراجات دپاره بچ کوم او د دې ماته ضرورت نشته چې سوارۀ په بدو باندې خپلې نوکرۍ کښې واخلم ځکه چې لس زره قطغني او لس زره رستاقي خو د وړومبے نه ما سره موجود دي اودا مې یقین دے چې څۀ وخت زۀ کابل ته ورسم نو لکونه پښتانۀ به ما سره شامل شي. واقعه دا وه چې د کومو بکسونو متعلق د احمق میر دا خیال وۀ چې دا د سرو زرو نه ډک دي هغه د

کارتوسونو نه ډک وو او زهٔ ټول ټال د یو زر پونډو په دنیا کښې مالک وم. مونږ چې په ښکار باندې د تللو انتظام وکړو نو زهٔ یو بدخشاني خبردار کړم چې میر تا سره دوکه کول غواړي ځکه چې هغهٔ خپل سکتر او سردارانو سره دا مصلحت کړے دے چې تا گرفتار کړي او په بله ورځ دې قتل کړي. د دې خبرې په اوریدو سره ما خپلو دیرشو سړو ته حکم وکړو چې تاسو به ما سره ښکار له ځئ او هدایت مې ورته وکړو چې میر بابا ته گورئ او په هغهٔ باندې ډزې کولو ته تیار اوسئ مگر تاسو ترهغې په هغهٔ ډز مهٔ کوئ تر څو پورې چې ما خپل رائفل هغهٔ ته نیغ کړے نهٔ دے. د دې هداياتو ورکولو نه پس زهٔ میر بابا سره شامل شوم او غرونو ته روان شو. مونږ چې د غرهٔ ویخ ته ورسیدو نو ما ولیدل چې پنځهٔ سوه نور سوارهٔ مونږ سره شامل شول د میر پیاده سړي هم دا شان په وسله پُر وو لکه چې جنگ دپاره تیار وي هر کله چې مونږ ولیدل چې تنزري نشته نو ما میر بابا ته چې زما گس لاس ته وهٔ ووئیل چې څهٔ وختې زهٔ د بدخشان نه راتلم نو ما دا اوریدلي وو چې ستا زما د گرفتارۍ اراده وه او ستا دا نیت وهٔ چې ما فیرنگیانو ته حواله کړې او دغه شان تهٔ د هغوي یو خدمت وکړې. نو کهٔ چرې دا ربښتیا وي نو تا دپاره د دې موجوده موقعې نه بله ښه موقع د گرفتارۍ نشته بیا ما خپل ټوپک د میر بابا سینې ته نیغ کړو او زما شلو تنو سړو خپل ټوپکونه د هغهٔ ملگرو ته نیغ کړل هغوي ټول په دې ویریدل او چغې ئ کړې چې مونږ مهٔ وژنئ مونږ د میر هیڅ پروا نهٔ کوؤ هم تا هغه په مونږ مقرر کړے دے. د میر بابا په حقله د هغوي په رویه زهٔ خوشحاله شوم او ما نور هیڅ ونهٔ کړل او واپس راروان شوم. درې ورځې پس ما آشان عزیز چې د رستاق یو مشر وهٔ میر بابا له ولیږلو او هغه مې مدعو کړو چې ما سره یو ښهٔ غوندې ماښام تیر کړه هغه درې سوؤ مسلح سړو سره راغے لیکن زما پهره دارو هغوي ته د راتیریدو اجازت ور نهٔ کړو او وې وئیل چې د دې خلقو دننه تگ ضروري نهٔ دے او نهٔ مناسب دے. البته تهٔ ځان سره دیرش تنه سړي بوتلے شے میر دومره خفه شو چې هغهٔ ټولو پښتنو ته په کنځلو گوتې پورې کړې او خپلو سړو ته ئ حکم وکړو چې په قلا په زور قبضه وکړئ او خپل بگلچي ته ئ حکم وکړو چې د فائر کولو بگل وغږوه هغوي ورومبے دروازه په یوه هله باندې واخسته لیکن زما پهره دار په جلدۍ سره واپس راغلل او دننه دروازه ئ قلف کړه او یو نوکر ماله په دؤ دؤ راغلو او ماته ئ ووې چې مونږ تباه شو.

زهٔ ناست وم او پرانستې جامې او یو واسکټ مې اغوستې وهٔ لیکن په جیب کښې مې یوه اووهٔ ډزې تماچه پرته وه زهٔ پاځیدم او سره د سړو د دروازې له روان شوم او پنځهٔ زره سړي مې مسلح بهر ولیدل. ما خپلو نوکرانو ته ووئیل چې د دومره ډیرو سړو په مقابله کښې جنگ کول ناممکن دي. د دې دپاره زهٔ به بهر وځم او په دې جم غفیر کښې به یو ځاے شم چې ما خلق ونهٔ پیژني او کهٔ چرې د شناخت کیدو نه ورومبۍ ورومبۍ ما میر د ځت نه

راونیولو نو مونږ به بچ شو لیکن کهٔ زهٔ قتل شوم نو زهٔ تاسو د خدائے په امان کښې پریږدم او بیا ستاسو خوښه ده چې جنګ کوئ او کنه. زهٔ بیا د دروازې نه ووتم او تماچه مې د لوې کوټ په لستوني کښې پټه کړه.

په ډیر لوړے قسمت باندې زهٔ د ټولو سرو نه تیر شوم او هیچا ونهٔ لیدم او د میر خوا ته راغلم بیا مې هغه د شا د طرف نه د شټ نه راونیو او د هغهٔ په لویږنده مې تماچه کښیښنوده. ما ورته ووې " اوس صبروکړه دا هم پښتون دے چې تا ورته کنځل کول توره وغورځوه ګنې ولم دې." میر بابا چغه وویسته او منت ئ وکړو چې تماچه رانه لرې کړه او وې وئیل چې هله به توره غورځوم لیکن ما د هغهٔ شټ نور هم ټینګ راتاؤ کړو تر دې پورې چې اخر هغهٔ خپله توره په زمکه وغورځوله بیا ما هغهٔ ته ووئیل چې خپلو سړو له حکم ورکړه چې د قلا نه بهر راوځي دا هم هغهٔ ووې او ما خپلو سړو ته په پښتو کښې ووئیل چې په بهرنی دروازه هم قبضه وکړئ ما میر ته ووې " ما تهٔ په خپل کور کښې په طور د دوست میلمه کړې تا ولې ما سره دغه شان د دغا بازی سلوک وکړو" او بیا ما د بدخشان خلقو ته مخ واړولو او ورته مې ووئیل چې تاسو ما دپاره جنګ کول غواړئ او کهٔ د دې بزدل سړي دپاره چې خپل لاسونه هم نهٔ شي خوځولے خلقو چې خپل میر ولیدو چې قریب الموت دے نو وې وئیل چې "تا دپاره" په دې ما هغوي ته حکم وکړو چې خئ خپلو خپلو کورونو ته لاړ شئ هر کله چې هغوي زما د هدایاتو تعمیل وکړو نو ما میر سره د لسو سورو (د میر) خپل کور ته روان کړل او د هغهٔ ښځې او د کور خلقو ته مې حکم وکړو چې ما له دلته ډوډی راکړئ په بله ورځ زهٔ قلا ته واپس شوم او تر ډیره وخته پورې مې ارام وکړو او د خدائے پاک شکر مې وښکو چې بچ شوم.

ما له ذکر کول پکار دي چې میر بابا او میر عمر یو بل سره دشمنان وو او ما ډیر کوشش وکړو چې دا دواړه میران زهٔ بیا رضا کړم اخر کار زهٔ کامیاب شوم او میر عمر شلور زرو سړو سره فیض اباد ته راغے او د ښار نه بهر جوزون نومے ځائے کښې دیره شو ماله بیا یو خط راغے چې زمونږ د دواړو (میر بابا او د میر عمر) دا اراده ده چې مونږ یو بل له د خپلې نوې جوړې شوې دوستي په ثبوت کښې خلعتونه ورکړو. او هغوي ماته دا سوال کړے وهٔ چې تهٔ هم په دې رسم کښې شامل شه. ما دا خبره منظوره کړه او زهٔ د دواړو میرانو په منځکښې کښیناستم او زمونږ په مخکښې د مصرو یوه لویه ټکره او د متهایئ پتنوسونه پراتهٔ وو هر کله چې میرانو په یو بل باندې خلعتونه وغورځول او یو بل سره د دوستی اقرارونه وکړل نو میر بابا ماته د عکس نه ووې " اوس چې مونږ دواړه وروڼه سره یو ځائے شو نو مونږ د مصرو دا ډالی په خپله کښې تقسیمولے شو" هر کله چې هغهٔ دا خبره وکړه نو زهٔ پوهه شوم چې د هغهٔ اشاره ماته ده نو ما ورته ووې " تاته به پته ولګي چې دا یو ګران کار دے." او حکم مې وکړو

چې د مصرو دا ډالي لرې کړئ د دې نه یو څو ګېنټې پس زۀ د هغوي نه رخصت شوم لیکن ما سره فکر وۀ چې هسې نه دا سرې زما برخلاف د دغابازۍ نور سازشونه جوړ کړي او هر څومره چې به ما د روانیدو تجویز کولو هغه هومره به هغوي بهانې کولې.

په دغه ورځو کښې کوم اشتهارونه چې ما په بلخ کښې چارچاپیره تقسیم کړي وو د فوځیانو لاس ته ورغلل او هغوي غلام حیدر ته سوال جواب وکړو چې مونږه د میر سلطان مراد برخلاف غزا کول غواړو ځکه چې هغه د فیرنګیانو دوست دے. غلام حیدر ته د میر سلطان مراد نه د ملک د لاندې کولو یو معقول عذر په لاس ورغے او د دې نه علاوه غلام حیدر دا خیال وکړو چې چونکې عبدالرحمٰن ئ په خوا کښې پروت دے نو هغه به ویریږي چې هسې نه دا فوځ برخلاف راشي. او د دې نتیجه به دا وي چې د بدخشان خان عبدالرحمٰن قید کړي چنانچه هغۀ خپل ورارۀ پنځۀ پلټنو او دولس سوه سورو او پنځۀ توپخانو سره راواستولو چې د سلطان مراد برخلاف جنګ وکړي هرکله چې دا فوځ تاشقرغان ته راورسیدو نو دې سورو دا خبرې پخپله شروع کړې چې مونږ له پکار دي چې میر له سزا ورکړو ځکه چې هغۀ عبدالرحمٰن پرې نښودو چې مونږ سره یو ځاے شي او جهاد وکړي. سلطان مراد چې په دې خبره خبر شو نو هغۀ میر بابا او محمد عمر ته ولیکل چې عبدالرحمٰن نور مۀ ایساروئ ګنې فوځ به زما نه هم بدل واخلي اوستاسو نه هم. دا چیټۍ زما په بې علمۍ کښې هغه استولے وه ولې ما له هم هغۀ یو خط راواستولو چې تۀ قطغن ته راشه ځکه چې زما اراده ده چې تاته په ګرمجوشۍ پخیر راغلے ووایم چونکې ماته د وړومبۍ چیټۍ څو علم نۀ وۀ زۀ د دې خپلې چیټۍ په راتلو ډیر حیران شوم او ما په زړۀ کښې ووې چې میر سلطان مراد څو وړومبے زما په راتګ باندې خفه وۀ نو اوس ولې هغه ناساپې خپله رایه بدله کړه او زۀ ئ مدعو کړم چونکې د میر سلطان مراد قاصد ته پته ولګیده چې زما شک پیدا شو په دې وجه هغۀ ماته ربښتیا خبره وکړه او ټوله قصه ئ راته وکړه. ما په جواب کښې ورته ووې چې مونږ به سبا له روان شو او محمد عمر هم ما سره تلو ته تیار شو. ولې میر بابا ووئیل چې زۀ به پسته درشم. ما هغۀ ته حکم وکړو چې ځان سره پنځوس ټوپک او پنځوس اسونه زین کړي او قیزه کړي د پنځوسو پښتنو دپاره چې ما د قید خانې نه خلاص کړي وو راوله زۀ دوه ورځې پس روان شوم او د بدخشان مشهد ته چې د کُشم په نوم بللے شي راورسیدم. یوه بله زړه قلا چې قلعه جعفرئ ورته وئیل هم په لاره راتله. او باوجود د دې چې د سلطان مراد قاصد په دې اصرار کولو چې مونږ له شواشو مخکښې تلۀ پکار دي ولې ما مخکښې د تلو نه تر هغې انکار وکړو تر څو چې میر بابا او د رستاق سوارۀ ما سره یو ځاے شوے نۀ وي. د دې نه زما اصلي مراد ډیر کول وو د دې دپاره چې میر سلطان ته مناسبه سزا زما د ایسارولو په جرم کښې ورکړې شي:

شپږ ورځې پس ما ته خبر راغے چې د بلخ فوځ سلطان مراد له شکست ورکړو او هغه سره د خپل کور د خلقو او د قولاب سابق بادشاه سره وتښتيدو. مونږ له لږ ساعت پس خبر راغے چې هغوي مونږ طرف ته په تيښته راروان دي او زمونږ خوا ته رارسيدلي دي ما چې دا واوريدل نو ما عبدالله ځلويښتو سورو سره د هغهٔ د استقبال دپاره وليږلو هر کله چې هغه راورسيدو نو ما د هغهٔ طبع تسلي وکړه او ورته مې ووئيل چې زهٔ به تاسو ته هيڅ نقصان نهٔ درسوم او کهٔ چرې زما په وفادارۍ خدمت وکړئ نو زهٔ به درسره ډير د مهربانۍ سلوک وکړم. ما سلطان مراد سره اقرار وکړو چې هر کله زهٔ بيا د حکومت خاوند شم نو د قطغن حکومت به تاله درکړم چنانچه ما هغه عبدالله او شپږو سوؤ سورو سره تاليخان ته وليږلو چې تهٔ زما د طرف نه خلقو ته د دوستۍ اطمينان ورکړه. زهٔ هم سمدستي هغوي پسې روان شوم او تاليخان ته په دوؤ ورځو کښې ورسيدم.

## اووم باب

د عبدالرحمٰن خان افغانستان ته رسيدل، د ځنې سرکرده سردارانو سره خبرې اترې کول، او په خاص خاص ځايونو قابض کيدل، د زرګونو غازيانو د عبدالرحمٰن سره شامليدل، د انګريزي ريزيډنټ ګرفن د طرف نه خط و کتابت کيدل، د برطانوي حکومت او حکومت هند د عبدالرحمٰن په امير کيدو راضي کيدل، او د دهٔ د امارت اعلان کول، د انګريزي فوځونو د افغانستان نه روانيدل، او د امير عبدالرحمٰن خان هغوي ته د هر قسم سهولت ورکولو کوشش، د سردار ايوب خان د هرات په طرف تلل، د افغانستان د حکومت مکمل اختيارات د امير عبدالرحمٰن خان په لاس راتلل او په دې شان د افغانستان د دويم لام خاتمه کيدل.

هر کله چې دا کارروائي جاري وه نو غلام حيدر خان نيم بلخي فوځ سره چې د هغهٔ برخلاف ئې د سردار سرور خان د قتل په وجه بغاوت کړے وهٔ په جګړه نښتے وهٔ. هغه تخت پُل ته سره د دريو پلټنو توپخانې، درې زره د رسالې د سورو او يو زر پياده مليشيا سره روان شوے وهٔ. باغيانو د تخت پل په قلا کښې پناه اخستې وه چې زما پلار او دوست محمد خان جوړه کړې وه. او پنځهٔ کاله د هغې په جوړيدو کښې لګيدلي وو. زما ياد شي چې هر کله زهٔ د دولسو کالو وم نو خلقو به د دې قلا خبرې کولې او اوس زهٔ د درې ځلويښتو کالو يم. ماته هغه ټولې خبرې دا شان يادې دي لکه چې پرون ما اوريدلي دي. دا قلا په دې نيت جوړه شوې وه چې کهٔ چرې مونږ نه کابل لاړو او د يو غير ملکي حکومت نه مونږ ته د پناه اخستو ضرورت پيش شو نو چې شاهي خاندان په دې قلا کښې پناه واخلي او په دې سبب دا قلا ډيره مضبوطه وه. او ډيره ښه جوړه شوې وه. غلام حيدر د قلا نه بهر وسيدو او دننه په باغيانو ئې ګوله باري شروع کړه. ليکن د وړدې مقابلې نه پس چې په هغوي کښې يو فريق ته هم په

لاس څـهٔ کـتـه نـهٔ وه راغلـې باغيانو په زوره اواز وکړو مونږ بغاوت نهٔ دے کړے بلکې مونږ د غلام حيدر او د قزلباشو برخلاف په دې وجه جنګ کوؤ چې هغوي ستاسو او زمونږ د بادشاه زوے پـه ده دادي کښـې وژلـے دے. مـونږ له پکار دي چې مونږ د شاهي خاندان وفادار اوسو فـوځ چـې دا واوريـدل نـو هـغـوي جنګ بس کړو او په جرنيل او قزلباشو ئ حمله وکړه. او هغوي ټول سره د دوؤ سوؤ باډي ګارډ د مزار طرف ته وتښتيدل. فوځ جخت ورپسې تعاقب شروع کړو او دا شان کلک ورپسې شول چې هغه د دريائے آمو او درهٔ آبدو په لاره بخارا ته پـه تښتيـدو مـجبور شول. او ټول مال اسباب او د کور خلق ئ د سپاهيانو په رحم پريښودل. هـغـوي د قـزلبـاشـو او د هـغـهٔ ټـول مال تالا کړو او د هغوي د کور خلق ئ قيديان کړل. دې بـاغـيـانو زما دوه افسران هم د جيلخانې نه رها کړل او د اعتبار په ځايونو باندې ئ مقرر کړل. په لږو ورځو کښې تاشقرغان، قطغن، شبرغان، سرپل او د اغشے فوځونه د دې واقعاتو نه خبر شول او د غلام حيدر د لاس مقرر شوي افسران ئ ګرفتار کړل. دغه وخت زهٔ تاليخان ته شپږ زره رستـاقي او دوه زره کُشم سورو سره راورسيدم هر کله چې د غلام حيدر په ورارهٔ او د هغهٔ پـه جـرنيـلانـو بـانـدې د قـندوز فوځ حمله وکړه نو د هغوي افسران وتښتيدل. ليکن د غلام حيـدر ورارهٔ د فـوځ د قهر او غـصې نه د خلاصيدو په غرض خپل ځان وويشتو. د دې نه پس ټـول فـوځـونـه مـاله راغلل او ماته ئ سلامي وکړه. زهٔ په سجده پريوتم او د خدائے حمد مې وکـړو او وهٔ مې وئيل ''اے خدايه تهٔ قادر ئ چې زمونږ ملک د کفارو د پنجې نه خلاص کړې او ستـا د دې خبـرې قـدرت شته چې تـهٔ هـغې کسانو له سزا ورکړې چې څوک هغوي سره مـلګري دي او رښتوني مسلمانانو له امداد ورکړې. اے خداوند تعالیٰ ټول اختيار ستا په لاس کښـې دے.'' هـر کله چې فوځونه ما سره يو ځائے شول نو ما سردار عبدالله له چيټئ ورکړه او د قـنـدوز فوځ له مې واستولو په هغې کښې مې د هغوي د وفادارئ شکريه ادا کړه او ورته مې ووې چې زهٔ تـاسـو ټـول د خپـل دين ورونـه او د خپـل ځان جزو ګنم. په اخر کښې ما ورته وليـکل چې زهٔ سردار عبدالله ستاسو د روغ جوړ تپوس دپاره دراستوم او د دې دپاره چې هغه زمـا د تندرستئ خبر تاسو ته درکړي. تر څو پورې چې مونږ يو تر بله سره پخپله نهٔ وي ليدلي څـکـه چـې زهٔ بـه مـجبـوراً دلته يو څو ورځې پاتې يم چې د خوراک د سامان او د روپو انتظام وکړم.

زهٔ پـه تـاليـخـان کښـې پاتې شوم او عبدالله دا چيټئ قندوز سيند نه پورې غاړه يوړه. فوځ زما د دې چيټئ په رسيدو ډير خوشحاله شو او په کيمپ کښې ئ آتش بازئ وکړې. او د خوشحالئ نه ئ يو بل له ډوډئ ورکړې. هغوي زمونږ د پيغمبر صلي الله عليه وسلم مبارک نـفلـونـه وکـړل او د هـغـهٔ د پـاک ارواح پـه ذريعـه ئ د خـدائے پاک نه دعا وغوښته چې د افـغـانستـان مسـلمانان د انګريزانو د لاس نه خلاص کړې او د خدائے پاک نه ئ سوال وکړو

چې یا مونږ له برے راکړے او یا د هغوي زړونه زمونږ طرف ته راواړوي. ما له هم د هغوي د طرف نه یو خط راغے چې په هغې کښې هغوي ماله زما په صحیح سلامت رارسیدو مبارکي راکړې وه. او وئیلي ئ وو چې زمونږ دا یقین دے چې خدائے پاک زمونږ په پره دے او په دې سبب ئ ته مونږ ته راستولے ئ چې ته مونږ د یو مالک د پښنو لاندې د چخني کیدو نه بچ کړې. ما خپل ځان سره د خدائے پاک د دې نیکی شکریه ادا کړه چې هغهٔ دومره زړونه زما طرف ته رااړولي وو.

ما د میر بابا د فیض اباد د میر دوؤ ورځو پورې انتظار وکړو لیکن هر کله چې هغه راونهٔ رسیدو نو ما هغهٔ ته یوه چیټهي ولیکله چې تهٔ ولې تراوسه پورې ما سره شامل شوے نهٔ ئ. او هغهٔ جواب راکړو چې زما په خیال کښې زما د شاملیدو اوس هیڅ ضرورت پاتې نشو ځکه چې ټول فوځ ستا اطاعت اختیار کړو. ما د دې په جواب کښې هغهٔ ته ووې چې تهٔ ضرور راشه ګنې نو زهٔ به درشم هغهٔ خپلو مشیرانو سره جرګه وکړه. هغوي هغهٔ ته ووئیل چې تهٔ عبدالرحمٰن سره یو ځائے شه ګنې نو هغه به ستا د تباهي دپاره فوځ راولیږي. هغهٔ د هغوي په نصیحت غوږ کښېښنودو او هغه ما له شپږو زرو سړو سره تالیخان ته راغے.

په دویمه ورځ ما میر بابا، میر عمر او میر سلطان مراد ته سره د سپر سردارانو دعوت ورکړو چې زما دربار ته راشئ او هر کله چې هغوي راغلل نو ما هغوي ته دا شان خبرې وکړې: ”تاسو ته معلومه ده چې په موجوده وخت کښې زهٔ په څهٔ حال کښې یم زهٔ د جهاد دپاره راغلے یم او زمونږ فوځ سره نهٔ خوراک شته او نهٔ روپۍ. د دې ملک حاکمانو له پکار دي چې هغوي د خپل خپل حیثیت مطابق روپۍ راوړي او د رعیت خلقو له پکار دي چې هغوي د سورو دپاره خرڅ خوراک په حیثیت د میلمنو ورکړي. او د هر دوؤ کورونو نه یو ګله او یوه بوجۍ د غنمو یا د اوربشو په طور د پیشکش ورکیدل پکار دي. د دې نه پس به بیا زهٔ نور تکلیف نه درکوم.“ ما د هغوي نه تر سبا پورې جواب وغوښتو او دربار مې برخواست کړو. ما سردار اسحاق ته هم یو خط ولیکلو چې ماته د هغې وخت نه چې تهٔ میمنې نه راروان شوے وے ستا متعلق هیڅ خبر نهٔ دے راغلے نو زهٔ به خوشحاله شم چې کهٔ تهٔ مزار ته راغلے او د دې ملک بندوبست تر هغه وخته پورې په خپل لاس کښې واخلې تر کومه پورې چې زهٔ دلته مصروف یم. هغهٔ ته زما چیټهي د اندخوئ په ریګستان کښې ورسیده او چونکې هغهٔ واوریدل چې بدخشان او قطغن ما لاندې کړو نو هغه فوراً راروان شو او مزار ته په درې ورځو کښې راورسیدو. د هغه ځائے نه هغهٔ دا ولیکل چې زهٔ راورسیدم لیکن د فوځ دپاره ما سره خرڅ خوراک نشته.

په دې اثنا کښې میرانو او سردارانو ماته سوال جواب راولیږلو چې مونږه ستا خبره ومنله او دا مو فیصله وکړه چې تا له دې درې لکه روپۍ نغدې سمدستي درکړو او نورې به

هم د آئنده دپاره بشرط ضرورت در کوؤ. او د دې په صله کښې درکوؤ چې مونږ د يو غير قوم د دشمن نه خلاصوې په دې وجه ځومره چې زمونږ وس کيږي مونږ به تا سره امداد کوؤ. ما حکم وکړو چې څۀ د خرڅ خوراک سامان د خان اباد په قلا کښې واچوئ او څۀ په نورو ځايونو کښې جمع کړئ. ما سردار اسحاق ته هم وليکل چې کۀ تۀ دولس زره اوښان راواستوے نو زۀ په هغوي خوراک بار کړم او تا ته به ئ واپس کړم. هم دغه وخت يار محمد خان نومے يو سوداګر چې د تاشقرغان باشنده وۀ ماله يو څو تحفې راوړې زۀ هيڅ پوهه نشوم چې په دې دومره خلقو کښې صرف دې يو سړي ولې ما له تحفې راوړې. ماته د دې نه لږې ورځې پس پته ولګيده چې د بلخ سابق وائسرائے لوے نائب د سرکاري خزانې چې په هغې کښې څلور زره طلا، لس زره بخارائي طلا، شپيتۀ زره کابلي روپې او د سلو سلو روپو دوه زره نوټونه تالا کولو نه پس دې سړي څخه يو څو زره پونډه پريښي وو. دا روپې د بلخ د خزانې نه اخستې شوي دي او دا سوداګر ماله د دې خبر د راکولو دپاره راغلے وۀ. هغه ما خپل غلام بچه فرامرز سره (چې او س د هرات کمانډر انچيف دے) تاشقرغان ته واستولو چې دا روپې په خپله قبضه کښې کړه او ماته ئ راوړه چنانچه هغوي لاړل او صحيح سلامت سره د دې لوے رقم را غلل.

په سبانې ورځ باندې نوروز وۀ (يعنې د نوي کال ورځ وه) او د دې ورځې په اعزاز کښې ما حکم وکړو چې د پښتنو د قوم شپږ زره جينکې او ښځې (چې ترکمانانو د شير علي د مرګ نه پس وينځې کړے وے) دې ازادې کړې شي او خپلو رشته دارانو ته دې حواله کړې شي. زما د دې حکم د تعميل نه وړومبے وړومبے مير بابا خان زما قاصدان ګرفتار کړل. په دې خيال چې په لږو ورځو کښې به زما او د انګريزانو مقابله ونښلي نو کۀ چرې زۀ (مير بابا خان) د دې غريبانانو ښځو په پريښودو کښې ډيل وکړم نو عبدالرحمٰن به ډير زر دومره مصروفه شي چې دا ښځې به ئ هيرې شي. زما په دې قاصدانو کښې هغۀ يو څو تنه چې خاموش پاتې کيدل ئ نۀ غوښتل قتل کړل. او په هغوي کښې يو تن ځان په سيند کښې وغورځولو او د خلقو دا خيال راغے چې ډوب شو ليکن هغه بچ شو او د فقيرانو په جامه کښې ماله راغے. او ما ته ئ دا ټول واقعات بيان کړل. ما چې دا واوريدل نو زما صبر نور مير بابا خان ته خلاص شو له دې کبله هغه ما يو څو مشيرانو سره ګرفتار کړو. ما مير محمد عمر د فيض اباد ګورنر کړو او د هغۀ ورور مې د رستاق ګورنر کړو او دوباره مې د دې ښځو د ازاديدلو احکام صادر کړل. او دغه شان مې د خپلې ښځې د ورونو د رهايي احکام جاري کړل چې د شغنان په جيلخانه کښې پراتۀ وو ما دا ټول غريبانان قيديان خپلو خپلو کورونو ته وليږل او د خدائے پاک شکر مې وويستو چې هغۀ ما له دومره طاقت راکړو چې ما خپل قوم سره امداد وکړو.

په بله ورځ زۀ قندوز ته ورسيدم او سپاهيانو زما په اعزاز کښې د يو د پاسه سل توپو سلامي وکړه. هغوي زما په ليدو ډير خوشحاله شول او دوه سوه هغه افسران ئ زما په مخکښې پيش کړل چې زما دشمنان وو په دې اراده چې هغوي دا افسران زما د خوشحالولو دپاره حلال کړي ولې ما هغوي له د دې اجازت ور نۀ کړو او حکم مې وکړو چې دا خلق دې رها شي.

په بله ورځ چې ما معائنه کوله نو د يو سړي په ليدو باندې ډير حيران شوم چې هغه راوړاندې شو د سلام کولو نه پس زما په پښو پريوتو ما هغه راوچت کړو او وۀ مې پيژندو چې دا خو نظير محمد سرور د نظر حيدر زوے دے چې په سمرقند کښې زما نه رخصت شوے وۀ. وړومبے خو هغۀ ډيرې توبې وويستې ليکن څۀ وخت چې ما هغۀ ته ووئيل چې ما تۀ معاف کړې نو هغۀ ماته ووئيل چې زۀ د کابل نه راغلے يم او تا دپاره مې يوه چيټئ راوړې ده. زۀ خپلې خيمې ته واپس راغلم او نظير ماته ووې چې زۀ دا وختې د انګريزي ريزيډنټ د طرف نه په طور د قاصد راغلے يم او په هندوکش باندې راتير شوے يم چې يخ او يخني هلته ډيره سخته وه. او واؤره د بنيادمو د زنګنونو نه بره رسيدله ما چيټئ پرانسته او د هغې مضمون دا شان وو :

"زما عاليجاه دوسته سردار عبدالرحمٰن خان،

ستا د دوست ګرفن د طرف نه، پس د سلامونو نه او ستا د روغ جوړ او د خير خيزيت د غوښتو نه زۀ تاته د دې خبرې اطلاع درکوم چې حکومت برطانيه د دې خبرې په اوريدو خوشحاله دے چې تۀ صحيح سلامت قطغن ته راورسيدے مونږ به خوشحاله شو کۀ چرې تۀ مونږ ته دا ووائ چې تۀ د روس نه څرنګ رارخصت شوے ئ او ستا تجاويز او ارادې د څۀ قسم دي."

ما دا چيټئ فوځ ته ولوسته ځکه چې حکومت برطانيه سره زما د تعلقاتو د پيدا کولو دا ابتدا وه او ماته دا دانشمندي نۀ ښکاره کيدله چې زۀ بغير د فوځ د مشورې نه هغۀ له جواب ورکړم. زۀ د ورانکارو خلقو نه ويريدم چې هسې نه چې هغوي دا مشهوره کړي چې عبدالرحمٰن انګريزانو سره د دې ملک د حواله کولو سازش کړے دے. او په دې وجه به زۀ تباه شوے وم. ما دا هم خيال وکړو چې دا د دې خبرې د معلومولو دپاره يوه ښه موقع ده چې حکومت برطانيه په بيروني تعلقاتو کښې ماله څومره اختيارات راکولو ته تيار دي. دا چيټئ ما هغوي ته په زوره ولوسته نو بيا مې ورته ووې چې زۀ به خوشحاله شم کۀ چرې سرداران ماله د دې چيټئ د جواب په جوړولو کښې امداد راکړي. ځکه چې زۀ داسې هيڅ کار کول نۀ غواړم چې په هغې کښې ما خپلو نورو دوستانو سره مشوره نۀ وي کړے. په دې وجه زۀ دا غواړم چې د دې جواب په جوړولو کښې تاسو ټول ما سره شامل شئ. هغوي د دوؤ ورځو

مهلت وغوښتو او په دریمه ورځ ئې ماله قریباً سل چیتي راوړې چې د څنو مضمون دا شان وو :

"اے انګریزي قومه تا له ضرور زمونږه ملک پریښودل پکار دي. مونږ به یا تاسو وباسو او یا به په جنګ کښې مړهٔ شو". په بله چیتي کښې دا مطالبه شوې وه چې پیشتر د دې نه چې مونږ تاسو سره خط و کتابت شروع کړو تاسو له پکار دي چې د تیر شوي نقصانونو عوضانه او هرجانه راکړئ. بل سړي لیکلي وو چې زمونږ د توپو او د قلاګانو د تباهي په عوض کښې دې مونږ له یو سل کروړه روپۍ راکړې شي. ګني نو مونږ به یو انګریز هم ژوندے پرې نهٔ ږدو چې پیښور ته لاړ شي. له چې څنګه مونږ ورومبے ذکر کړے وو بل سردار دا رنګ لیکلي وو اے دغابازو کفارو تاسو هندوستان هم په دغابازۍ اخستے دے او اوس تاسو دا غواړئ چې افغانستان هم په دغه شان لاندې کړئ مونږ به څومره چې زمونږ وس وي مقابله کوؤ او بیا به د روس غوندې یو بل طاقت مونږ سره ملګرے شي او ستاسو برخلاف به جنګ کوؤ.

مختصر دا چې هغوي ماته دا ټول خرافات او فضولیات پیش کړل. ما دا ټولې چیتي په زوره ولوستې او د هغې نه پس ما هغوي ته ووئیل چې زهٔ به هم ستاسو په مخکښې یو جواب جوړ کړم د دې دپاره چې تاسو بیا دا ونهٔ وایئ چې تا د دې نه ورومبے بل چا سره مشوره کړې وه. ما د کاغذ یوه ټکړه او قلم راواخستو او د خپل خدائے نه مې سوال وکړو چې د ټول مخلوق خدائے دے چې تهٔ ماته یو مناسب جواب وښیه چې وهٔ ئې لیکم. ما بیا د اووهٔ زره ازبکو او پښتنو په مخکښې دا شان ولیکل :

"زما عالیجاه دوسته ګرفن صاحب، د حکومت برطانیه نمائنده.

د لیکونکي یعني سردار عبدالرحمٰن خان د طرف نه دې تاته سلام وي. زهٔ ستا د عنایت نامې په رارسیدو چې په هغې کښې تا د قطغن ته زما په صحیح سلامت رارسیدو باندې د خوشحالۍ اظهار کړے دے خوشحاله شوم. تا چې د دې خبرې زما نه تپوس کړے دے چې تهٔ د روس نه څرنګ راروان شوے نو زهٔ د وائسرائے جنرل کافمین او د روسي حکومت په اجازت راروان شوے یم زما د دې راروانیدو دا اراده ده چې زهٔ خپل قوم له د هغوي د مصیبت او تکلیف په حالت کښې امداد ورکړم وغیره وغیره، والسلام"

ما چې دا خط په زوره فوځ ته ولوستو نو ما هغوي نه تپوس وکړو چې ستاسو زما دا جواب خوښ دے هغوي جواب راکړو چې مونږ د خپل دین او د ملک دپاره ستا د کمان لاندې جنګ کولو ته تیار یو. لیکن مونږ بادشاهانو سره په خط و کتابت باندې نهٔ پوهیږو. بیا د خدائے او د نبي صلي الله علیه وسلم په قسم باندې هغوي ماله پوره پوره اختیار راکړو چې تهٔ څهٔ چې مناسب ګڼې هغه ولیکه بیا هغوي دا شان یوه لویه نعره ووهله "او چار یار، دا چیتي

چې تا لیکلي ده دا بالکل درست جواب دے او د دې سره مونږ ټول متفق یو.''

هر کله چې هغوي زما دا چیټهي خوښه کړه نو ما نظیر محمد سرور خان له ورکړه او هغه بیا د څلورو ورځو د ارام نه پس د قندوز نه کابل ته روان شو. زهٔ هم ورو ورو چریکار ته روان شوم. دې سره سم ما یو زباني پیغام د کابل انګریزي افسرانو ته د دې مضمون واستولو چې زهٔ تاسوسره فیصلې کولو دپاره چریکار ته درروان یم. په دیرشم اپریل ګرفن صاحب یوه بله چیټهي راواستوله او ما ته ئ په هغې کښې د دې ترغیب راکړو چې تهٔ کابل ته د راتلو کوشش وکړه او د حکومت افغانستان واګې سنبال کړه. ما د دې په جواب کښې هغهٔ ته په شپاړسم مئ دا ویکل :

''زما معزز دوسته،

زما د حکومت برطانیه نه وړومے هم ډیر امیدونه وو او اوس هم شته او ستا دوستی زما دا امیدونه درست او جائز ثابت کړل. تاته په ښهٔ شان د افغانستان د خلقو د طبیعتونو پته ده د یو سړي خبرۀ هیڅ هم نشي کولے تر څو پورې چې هغوي دا محسوس نهٔ کړي چې عبدالرحمٰن د هغوي د خیر ښیګړې خبره کوي. لیکن پیشتر د دې نه چې دا خلق ماته کابل ته د تلو اجازت راکړي هغوي د مفصل ذیل سوالاتو جوابات غواړي:

☆ زما د حکومت حدود به څهٔ وي؟

☆ آیا قندهار به په هغې کښې شامل وي؟

☆ آیا یو یورپین سفیر یا انګریزي فوځ به په افغانستان کښې مقیم پاتې کیږي؟

☆ د حکومت برطانیه زما نه څهٔ طمع ده چې زهٔ به د هغوي د کوم کوم دشمن مقابله کوم؟

☆ حکومت برطانیه د کوم قسم فوائدو د رسولو وعده ما سره او زما قام سره کوي؟

☆ او د دې په عوض کښې هغوي زما نه د کوم قسم خدماتو توقع لري؟

دا جوابونه به زهٔ د هغوي په مخکښې ږدم او د هغوي په مصلحت به زهٔ د عهدنامې هغه شرطونو سره اتفاق کوم چې کوم زهٔ قبلولے شم او پوره کولے ئ شم. زما ستاسو د عزت دپاره په خدائے یقین دے چې یوه ورځ به دا شان راشي چې زما دا قوم او زهٔ به دواړۀ ستاسو دا خدمت وکړو اګرچې برطانیه ته د دې څیز ضرورت نشته ولې په دنیا کښې د ضرورت موقعې کله کله پیښیږي.''

د خدائے پاک په مهرباني خلق جوق در جوق د حلف وفادارۍ د اخستو دپاره راروان وو او د هر قسم خدمت یعنې هم د ځان او هم د روپو دپاره تیار وو.

هر کله چې زهٔ پنج شیر نه چریکار کښې داخل شوم نو قریباً درې لکه غازیان راجمع شوي وو او ماسرهٔ یو ځائے شوي وو ما د خدائے شکر وکړو چې هغهٔ ماله دومره خلق راوستل.

اودا ټول خلق په دې خوشحاله وو چې ما خپل راتلونکے بادشاه وګڼې. او زما د احکامو اطاعت قبول کړي. هغوي ما سره په ايمانداري لوظ وکړو چې مونږ به د انګريزانو برخلاف جنګ کوؤ خو د دې په جواب کښې ما ووئيل چې د انګريزانو برخلاف د جنګ هيڅ ضرورت نشته ځکه چې هغوي ماته خط راستولے دے او دعوت ئې راکړے دے چې د کابل تخت منظور کړه.

په څوارلسم د جون ګرفن صاحب بيا زما د سوالونو جوابونه دا شان وليکل :

"پس د سلامونو نه. ماته حکم شوے دے چې تاله ستا د هغې سوالونو چې کوم تا زمونږ نه کړي دي د حکومت هند جوابونه درواستوم. وړومبے د دې خبرې متعلق چې د کابل فرمانروا به بيروني حکومتونو سره کوم قسم تعلقات وي چونکې حکومت برطانيه د يو بيروني طاقت هم دا حق نهٔ تسليموي چې هغوي د افغانستان په معاملاتو کښې دخل ورکړي او چونکې روس او ايران دواړو دا عهد کړے دے چې مونږ به د افغانستان په معاملاتو کښې هيڅ قسم دخل نهٔ ورکوؤ په دې وجه دا ښکاره خبره ده چې د کابل فرمانروا ماسوائې د انګريزانو نه بل هيڅ بيروني حکومت سره سياسي تعلقات نشي ساتلے. او کهٔ چرې يو بيروني طاقت د افغانستان معاملاتو کښې د دخل ورکولو کوشش وکړي او د دې مداخلت نتيجه دا وي چې د کابل په فرمانروا باندې ناحقه جارحانه کارروائي وشي نو حکومت برطانيه به هغهٔ سره د امداد کولو دپاره تيار وي. او کهٔ ضرورت وي نو مدافعت به ئې کوي په شرط د دې چې هغه د خپل بيروني تعلقاتو متعلق د حکومت برطانيه په نصيحت باندې عمل کړے وي.

دويم د علاقې د حدوداتو متعلق نو ماته د دې وينا حکم شوے دے چې د قندهار ټوله صوبه به د يو جدا حاکم د لاندې وي ماسوائې د پشين او سبي نه چې هغه به د انګريزانو په خپله قبضه کښې وي. نظر بر وجوهات بالا زمونږ حکومت په دې دوؤ خبرو تا سره د هيڅ ګفت و شنيد کولو دپاره تيار نهٔ دے او نهٔ زمونږه د شمال مغربي سرحداتو متعلق تا سره د خبرو اترو کولو دپاره تيار دے ځکه چې د دې متعلق سابق امير محمد يعقوب خان سره پوره فيصله شوې ده. ماسوائې د دغې مستثنياتو نه حکومت برطانيه په دې رضامند دے چې تهٔ په ټول افغانستان باندې ( بشمول هرات چې د هغې د قبضې درکولو هم مونږ ذمه وار نهٔ يو اګرچې حکومت به ستا په لاره کښې څهٔ ممانعت نهٔ اچوي کهٔ چرې تهٔ د هغې د قبضه کولو دپاره څهٔ عملي قدم وچت کړے) خپل هغه هومره مکمل او وسيع اختيارات قائم کړے څومره چې ستا د خاندان بل امير د دې نه وړومبے استعمال کړي وو. حکومت برطانيه دا نهٔ غواړي چې د دې حدوداتو په دننه علاقه کښې د هغې په اندروني معاملاتو کښې دخل ورکړي او نهٔ به د تا نه د دې مطالبه کيږي چې تهٔ دې يو انګريزي ريزيډنټ په خپله علاقه کښې پريږدې اګر چې د دوؤ ګاونډي ملکونو په منځکښې د معمولي او دوستانه آمدورفت په اسانتيا سره د

ساتلو دپاره به دا مناسب وي چې په اتفاق سره د حکومت برطانیه یو مسلمان ایجنټ په کابل کښې مقرر شي.

ما په دویشتم جون د دې چیټې یو مختصر جواب ولیکلو ولې په هغې کښې مې د دې خبرې منظوري ور نهٔ کړه چې د قندهار ښار دې زما د حکومت نه جدا شي ځکه چې قندهار د شاهي خاندان ښار دے او د دې ښار د شاملولو نه بغیر به زما حکومت بالکل یو بیکاره څیز وهٔ.

ما په خدائے توکل وکړو او د کوهستان نه چاریکار کښې داخل شوم د فیرنګیانو فوځ د غازیانو په دې دومره لویه اجتماع باندې څهٔ ناقلاره غوندې ښکاریدو د کوهستان د کابل سرداران او نور هغه کسان چې د انګریزانو برخلاف ئې جنګ کولو به هره ورځ ما سره شاملیدل او حلف وفاداري به ئې وچتولو. او کوم خلق چې پخپله راتلے نهٔ شو هغوي ما سره د خطونو یا په بله ذریعه راشه درشه پیدا کړل زما مخبرانو د کابل نه ماته رپورټ راوړو چې انګریزي افسران ستا د ارادو متعلق په شش و پنج کښې پراتهٔ دي. په شلم جولائي د افغان قبائلو ټولو سردارانو او مشرانو چې په هغه ځائے کښې موجود وو زهٔ په چاریکار خپل بادشاه او امیر تسلیم کړم او زما نوم ئې په خطبه کښې په طور د فرمانروا ولیکلو. خلق خوشحاله شول چې خدائے پاک د هغوي وطن د هغوي د خپل یو اسلامي حاکم په لاس کښې ورکړو.

ګرفن صاحب په دویشتم جولائي په کابل کښې یوه جلسه وکړه او د انګریزي افسرانو او افغان سردارانو په موجودګۍ کښې ئې زما د امیر کیدو اعلان وکړو او په دې موقع ئې مفصله ذیل تقریر وکړو:

"چونکې صورت واقعاتو سردار عبدالرحمٰن خان په داسې حیثیت کښې پیښ کړے دے چې د ګورنمنټ خواهشات او امیدونه په دې پوره کیږي د دې دپاره د هندوستان وائسرائے او د ملکهٔ معظمه حکومت د دې خبرې په خوشحالۍ اعلان کوي چې مونږ د ټولو خلقو په مخکښې سردار عبدالرحمٰن خان چې د نامتو امیر دوست محمد خان نمسے دے په طور د کابل د امیر تسلیموؤ. د حکومت دپاره دا د خوشحالۍ خبره ده چې قبائلو او سردارانو پخپله د بارکزي خاندان یو ممتاز فرد چې نامتو سپاهي او تجربه کار سړے دے ځان له خوښ کړو. حکومت برطانیه ته د هغهٔ خیالات ډیر دوستانه دي او تر کومه پورې چې د هغهٔ حکومت نه دا خبره ښکاره کیږي چې هغه مونږ سره دوست دے نو د حکومت برطانیه امداد به همیش هغهٔ ته حاصل وي. زمونږ حکومت ته د خپلې دوستۍ د ښکاره کولو بهتره طریقه د هغهٔ دپاره دا ده چې د هغهٔ په رعایا کښې چا چې زمونږ خدمت کړے دے هغوي سره د دوستۍ سلوک وکړي."

د جولائي په یو کم دیرشم تاریخ د شملې نه د یو تار په ذریعه د کابل انګریزي

افسرانو تـه اطـلاع راورسيـده چې د ميوند په مقام انګريزي فوځ د ايوب خان د لاسه سخت شـکسـت وخـوړو. ګـرفن صاحب چې دا خبر واؤريدو نو هغهٔ بغير د وخت د ضائع کولو نه د رسـالـې يوې وړې دسـتـې سـره مـا سـره د ملاقات کولو دپاره ذمّه نومے ښار ته چې د کابل نه شپاړس ميلـه لـرې دے سـور راغـلـو. دپـاره د دې چې هغه د خپل آئنده نقل و حرکت دپاره انتـظـامـات وکړي. زمونږ دا کانفرنس درې ورځې يعنې د د ديرشم جولائي نه تر اول اګست پـورې جـاري وۀ. ما ګرفن صاحب ته ووئيل چې زمونږ ذ باهمي سمجهوتې متعلق يوه باقاعده عهـدنـامـه پـکار ده چې زهٔ ئې خپلو خلقو ته ښودلے شم او هغهٔ بيا ماله دا د ذيل دستاويز حواله کړو.

"هـز اکسـي لـنسـي وائـسرائے او ګـورنـر جـنـرل بـاجلاس کونسل د دې خبرې پـه معلومولو خوشحاله شوے دے چې يور هائي نس مونږ ته د دوستۍ خيالات لرې. او په لحاظ د دې چې د يـور هـائـي نس د حکومت د لاندې به د يو منظم حکومت په قيام سره سردارانو او عـام خـلـقو ته فائده وي. د دې دپاره حکومت برطانيه يور هائي نس د کابل امير تسليموي. د دې نه علاوه د وائسرائے او ګورنر جنرل هندوستان له طرف نه ماته د دې خبرې د اعلان کولو اختيار راکړے شوے دے چې کومې کومې علاقې د يور هائي نس په قبضه کښې دي د هغې په انـدرونـي حکومت کښې ، حکومت برطانيه د هيڅ قسم دخل ورکولو خواهش نهٔ لري. او نهٔ دا خـواهش لري چې يو انګريزي ريزيډنټ دې په هغو علاقو کښې مقرر شي. ليکن د معمولي دوستانه آمدورفت د سهولت دپاره لکه چې په يو دوؤ ګاونډي حکومتونو کښې ساتلے شي. مـمـکـن ده چې دا مـنـاسـب وګـڼلے شي چې د حکومت برطانيه يو مسلمان ايجنټ د دواړو حـکومتونو په اتفاق سره په کابل کښې وسيږي. يور هائي نس دا درخواست کړے دے چې د يـور هـائـي نـس د واقـفـيـت دپاره دې حکومت برطانيه خپل خيالات او ارادې د دې متعلق په تـحـريـر کښې راولې چې د کابل د فرمانروا به بيروني طاقتونو سره کوم قسم تعلقات وي. او وائسرائے او ګورنر جنرل باجلاس کونسل ماته د دې، خبرې د اعلان کولو اختيار راکړے دے چې چونکې حکومت برطانيه د يو بيروني حکومت استحقاق د افغانستان په اندروني معاملاتو کښې د دخـل ورکـولـو نـهٔ تـسـليموي او چونکې ايران او روس دواړو دا عهد کړے دے چې مـونږ به د افغانستان په معاملاتو کښې هيڅ قسم دخل نهٔ ورکوؤ. دې دپاره دا ظاهره خبره ده چې يـور هـائـي نس ماسوائ د حکومت برطانيه نه بل بيروني طاقت سره هم سياسي تعلقات نهٔ شـي سـاتـلے. کهٔ چرې يو بيروني طاقت د افغانستان په معاملاتو کښې د دخل ورکولو کوشش وکړو او کهٔ چرې د دې مداخلت نتيجه دا وخته چې د يور هائي نس په مملکت باندې ناجائزه حـمـلـه وشـوه نـو پـه دې صورت کښې به حکومت برطانيه هغه هومره او په هغه طريقه امداد کـولـو دپاره تيار وي کوم چې حکومت برطانيه ته د هغې مداخلت دپاره ضروري ښکاري. په

شرط د دې کۀ یور هائي نس د خپل ټول بیروني تعلقاتو متعلق غیر مشروط طور سره د حکومت برطانیه په نصیحت باندې عمل وکړي."

گرفن صاحب ماته درخواست وکړو چې تۀ انګریزي افسرانو ته په مخه ښه وئیلو دپاره کابل ته لاړ شه. وړومبے د دې نه چې هغوي د دې ملک نه وځي. هغۀ مانه دا سوال وکړو چې تۀ د هغوي د حفاظت دپاره ټول ضروري انتظامات وکړه او تۀ د هغې انګریزي فوځ دپاره سامان رسد هم پیدا کړه چې هغوي کښې څۀ د جنرل رابرټس د لاندې قندهار ته روان وو او څۀ د سر ډانلډ سټورټ د لاندې پیښور ته روان وو. ما هغوي سره لوظ وکړو چې زۀ به په دې معامله کښې خپل انتهائي کوشش کوم او هغۀ له مې د هر قسم اطمینان او تسلي ورکړه چې تر سرحده پورې به انګریزان صحیح سلامت لاړ شي. ما هغۀ ته ووئیل چې زما په رائ کښې جنرل رابرټس له پکار دي چې هغه فوراً قندهار ته روان شي او د هغۀ د رخصتیدو نه پس به زۀ سرډانلډ سټورټ له د خدا حافظ وئیلو دپاره لاړم شم. په اتم اګست جنرل رابرټس د کابل نه قندهار ته د فوځ یوې حصې سره روان شو او سردار محمد عزیز خان د سردار شمس الدین خان زوے سره د یو څو نورو نوکرانو ما مقرر کړل چې د جنرل رابرټس فوځ سره دې قندهار پورې لاړ شي او هغوي د دې خبرې اهتمام وکړي چې په لاره باندې خلق د هغوي مقابله ونۀ کړي. او د خپل ځان دپاره او د خپلو باربرداری د څاروو دپاره دې خوراک حاصل کړي. قبائلو په لاره زما د هغو احکامو تعمیل وکړو چې کوم دې افسرانو هغوي ته زما د طرف نه ورسول او په لاره ئ هیڅ مقابله ونۀ کړه. چنانچه جنرل رابرټس قندهار ته صحیح سلامت ورسیدو او ایوب په اول ستمبر د شکست خوړلو نه پس هرات ته وتښتیدو.

سر ډانلډ سټورټ په لسم اګست د شیر پور نه پیښور ته روان شو او د هغۀ د روانګی نه یو څو منټه وړومبے زۀ هغوي ته په مخه وئیلو دپاره لاړم. مونږ قریباً پنځلس منټه پورې یو دربار وکړو چې په هغې کښې مونږ د یو بل تعریفونه وکړل او زمونږ راشه درشه د دوستی په طریقه وو زمونږ د ګفت و شیند په دوران کښې د دې خبرې اقرار هم وشو چې د افغانستان د توپخانې دیرش توپې دې چې کومې دا وخت په شیرپور کښې وے ماته راکړې شي او د دې خبرې اقرار هم وشو چې کومې نولس لکه روپۍ انګریزانو د خپل قیام په دوران کښې د ملک نه مالیه ټوله کړې ده او په هغو ئ د خپل فوځ دپاره سامان رسد اخستے وۀ او خپل استحکامات ئ پرې جوړ کړي وو دا ټول رقم دې ماته واپس کړې شي. د دې نه علاوه دا اقرار هم وشو چې دا کومې نوې قلاګانې چې انګریزانو په کابل کښې جوړې کړي دي دا دې نۀ ورانیږي.

دغه رنګ د افغانستان د دویم لام او په افغانستان باندې د انګریزانو د قبضې خاتمه

وشوه. په دې طريقه د افغانستان تخت او د حکومت واګې زما لاس ته راغلې. چې د وينې په لحاظ او د قوميت او د مذهب په لحاظ د ټول ملک حق زما وه. افغان قوم هم په دې خوشحاله وه چې زمونږ ملک د اسلامي بادشاه په لاس کښې ورغې. او ما د خدائے پاک شکر وکړو چې هغه ماته دا خدمت وسپارلو او زه ئې د دې قابل کړم چې خپل خلق د هغو تکاليفو نه خلاص کړم چې کوم هغوي ته په نظام سلطنت کښې د اړې ګړي په وجه پيښيدل. بيا د ملک د انتظام د امن او د ترقي کار په لاس کښې واخستو ليکن دا کار دومره ډير اسان نه وه.

## اتم باب

د امیر عبدالرحمٰن خان د ملک د نظم و نسق په طرف متوجه کیدل، د محکمو او ادارو قائمول، د امیر عبدالرحمٰن خپل زامن د کور خلق او نور رشته دار خپلوان کابل ته راوستل، د کلونو د قسماقسم مصیبتونو خاتمه کیدل، د امن او خوشحالي یو نوے دور شروع کیدل، د ملک غدارانو او د قام دشمنانو ته سختې سختې سزاګانې ورکول، د وسلې جوړولو کارخانې قائمول، د روپو او نورو سکو ټکسال قائمول، د فوځ او د مالیاتو د استحکام په طرف توجه کول او په اخر کښې قندهار په خپله قبضه کښې راوستل او د هغې نوے ګورنر مقررول.

زهٔ چې په تخت باندې کښیناستم او انګریزان د کابل نه لاړل نو ما د ترقي او نظام حکومت په رکاب کښې پښه کښیښوده. په هر یو ښار کښې چې زما په حکومت کښې دا وخت واقع وهٔ ما هغه افسران مقرر کړل چې د چا ذکر به اوس مخکښې وکړم. په لویو لویو او زیات اهم ښارونو کښې ما د ډیر لیاقت او قابلیت کسان مقرر کړل په وړو ښارونو کښې چې کوم ځاے کښې نسبتاً فرائض کم وو ما د اوسط قابلیت کسان مقرر کړل. دا افسران حسب ذیل وو:

(۱) ګورنر سره د هغهٔ د سر کاتبانو او د عملې (۱)

(۲) قاضي (د مذهبي عدالتونو جج) سره د خپلو ماتحتانو

---

(۱) دا نوټونه د سلطان محمد خان د میر منشي د لاس لیکلي دي :

(الف) په هر یو ښار کښې چې کوم د امیر په حکومت کښې دے دا مذکوره بالا درې محکمې د حکومت د طرف نه د انتظام دپاره موجودې دي چې سرے بالکل درست خبره کوي نو داسې قطعي قواعد او ضوابط نشته چې د هغې په ذریعه د یو افسر اختیارات د بل نه جدا کیدے شي. یا د هغهٔ اختیارات محدود شوے وي. بسا اوقات مقدمې هم هغه عدالت ته د سماعت دپاره ځي چې چا له سائل درخواست ورکړي مګر عام طور سره ګورنر په خپل ښار د ټولو محکمو مشر ګڼلے شي او د نورو عدالتونو د فیصلو نه د هغهٔ عدالت ته اپیل کیږي. د ګورنر اصلي فرض د مالکان اراضي وغیرو نه د مالیې ټولول دي او د مالکان اراضي تنازعې فیصله کول په صوبو کښې د امن قائم ساتل او وقتاً فوقتاً د بادشاه فرامین او احکام د ښار نورو افسرانو ته او په صوبه کښې د بادشاه نور رعایا ته رسول دي. د ځنې وړو ګورنرانو په سر لوے ګورنران مقرر دي او د لویو ګورنرانو په سر وائسراے ګان مقرر دي چې د نائب الحکومه په نوم بللے شي او د وائسراے ګانو او د ټولو فوځي افسرانو او د نورو محکمو په سر د امیر مشر زوے شهزاده حبیب الله خان د ټولو نه لوے عدالت اپیل ګڼلے شي.

(ب) د قاضي مذهبي عدالت د ټولو نه لوے عدالت ګڼلے شي او په دې سبب د دې عدالت اختیارات مذهبي معاملو پورې محدود نهٔ دي بلکې هرقسم دیواني مقدمات په دې عدالت کښې دائر کیدے شي عام طور سره تجارتي تنازعات او مذهبي تنازعې دلته فیصله کیږي. د طلاق او د وادهٔ او د میراث مقدمې هم دلته فیصله کیږي د سزائے موت د جرائمو فیصلې هم دا عدالت کوي. د دې عدالت چیف جج ته قاضي وائي او د هغهٔ ماتحتانو ته مفتیان وائي. مقدمات په اکثریت فیصله کیږي.

(۳) کوتوال (د پولیس د محکمې افسر) سره د پولیس فورس سیکرټري او د محکمه راهداری ملازمان

(۴) قافله باشي (د محکمهٔ قافله جاتو افسر) سره د تجارتي بورډ چې ورته پنچایت وئیلے شي او بل دفتر چې په هغې کښې د روزانه آمدنۍ او خرڅ حساب کتاب ساتلے شي هم قائم دے. د محصولچي دفتر چې چبوتره ورته وائي، خزانه او یو فوځ په ښار کښې د امن د قیام دپاره ضروري ګڼلے شي.

ما د مختلفو قبائلو او صوبو مشرانو ته احکامات جاري کړل چې په ملک کښې امن و امان قائم ساتي او خپلو هم وطنیانو او د قام خلقو سره د مهربانۍ سلوک کوئ کهٔ چرې تاسو زما په دې وینا عمل وکړو نو زما نه هم د دې په بدل کښې د مهربانۍ د سلوک او د انعاماتو او د شاهي عنایاتو توقع کوئ. په اخر کښې ما هغوي ته د خپل دوستانه جذباتو او د مهربانۍ د خیالاتو اطمینان ورکړو.

اوس ما د خپل کور خلق او خپل دوه زامن حبیب الله خان او نصر الله خان چې په روس کښې پاتې شوي وو د خپل اعتباري نوکرانو د نګرانۍ لاندې (چې ما روس ته د هغوي د راوستو دپاره لیږلي وو) ځان له راوغوښتل ما خپل رشته داران چې په قندهار کښې وو هم

---

(ج) د کوتوال اختیارات په فوځداري معاملاتو کښې په نسبت د نورو ټولو فوځداري افسرانو زیات وي. هغه یو کونه د ټول پولیس مشر او د فوځداري عدالت جج او د محکمهٔ مخبران انچارج وي. درحقیقت کوتوال په مشرقي حکومتونو کښې یو ډیر بااختیاره افسر ګڼلے شي. په تمامو زړو مشرقي کتابونو کښې مونږه د کوتوالانو د ظلم او زیاتے قصې او نظمونه لولو کوتوال واړهٔ فوځداري مقدمات په خپله فیصله کوي او غټې مقدمې صدر مقام ته د فیصلې دپاره راستوي.

(د) قافله باشي یو دا شان افسر دے چې هغه د باربردارۍ څاروي د مسافرانو دپاره پیدا کوي دا د هغهٔ فرض دي چې وګوري چې څوک څاروي په کرایه باندې ورکوي نو چې هغه هغې سړو له دوکه یا هغوي سره بدسلوکي ونکړي. څوک چې د هغوي اوښان قچرې یا نور د باربردارۍ څاروي په کرایه اخلي هغه د دې کسانو نه کمیشن اخلي. چې څوک څاروي په کرایه اخلي او د هر یوې سودا پوره حساب حکومت له ورکوي هم د دې مد نه حکومت د دې محکمې د ټولو ملازمالو وغیرۀ اخراجات ادا کوي او باقي روپۍ چې پاتې شي په سرکاري خزانه کښې داخلې شي.

(ه) د تجارتي بورډ کار دا ګڼے چې هغه د سوداګرانو تنازعې فیصله کړي د بورډ صدر د دې عدالت مشر وي او دې ممبران د دواړو مذهبونو یعنې د مسلمانانو او د هندوانو سوداګرانو نه د خپل خپل شمار مطابق منتخب کیږي.

(و) د محکمه مال دا کار دے چې هغه د مالیې د حساب تصفیه کوي او هر څومره سالانه مالیه چې یو زمیدار حکومت ته ورکوي د هغې اندراج ساتي.

(ز) روزنامچه هغې افسرانو ته وائي چې د روزانه آمدنۍ او خرڅ اندراج کوي. دا هغه دفتر دے چې په هغې کښې د هغه ټولو دستاویزاتو نقلونه پراتهٔ وي چې کوم د بیلو بیلو دفترونو نه د مالیې د جمع کولو یا د مالیې د خرڅ کولو دپاره جاري کیږي.

راوغوښتل او هم د دې کال په دوویشتم نومبر ما یوې بلې ښځې سره وادهٔ وکړو چې د ملا عتیق الله لور وه. او د هغهٔ مور زما ترور وه. د دې وادهٔ انتظام زما د ترهٔ سردار محمد یوسف خان په ذریعه او د هغهٔ په کور کښې شوے وهٔ. زما د ټولو نه کشرے زوے محمد عمر د دې اخري ښځې نه شوے وهٔ . په لږه عرصه کښې زما ټول بچي د کور خلق زما مور، خور او زامن چې د کلونو نه ئ زهٔ نهٔ وم لیدلے ټول یو ځاے شول او د خداے پاک شکر مو ادا کړو چې هغهٔ د دولسو کالو د جلاوطنۍ او د دومره مصیبتونو او تکلیفونو تیرولو نه پس دومره خوشحالي زمونږ نصیب کړه.

چونکې په ملک کښې چارچاپیره باغیانه جذبات نمایان کیدل نو ما خپل مخبران او جاسوسان مقرر کړل چې ماته د هغې ټولو واقعاتو او خبرو خبر راکوي چې څهٔ په خلقو کښې کیږي او په دې طریقه به ما د ډیر ښهٔ ثبوت نه پس دا معلومول چې څوک زما دوستان او وفادار دي. دوئ سره ما بیا د مهرباني سلوک کولو. لیکن هغه کسان چې ما سره دشمنان وو او ورانے او فساد به ئ کولو نو هغوي له به ما سخته سزا ورکوله. د دې قسمه خلقو سرغنه ګان او سخت مجرمان هغه متعصب ملیان او سینه زور سرداران وو چې د دې نه وړومبے د شیر علي مرحومْ په پره کښې شامل وو. دوئ سره ما د خپل خپل عمل مطابق سلوک وکړو. په هغوي کښې مې ځنې د ملک نه بدر کړل او بعضو له مې د خپل ورانو کارونو سخت ترینه سزا ورکړه. په دې ټول وخت کښې ما ډیر په محنت سره کار کولو او ټولې چیټۍ به مې پخپله پخپل لاس لیکلې ځکه چې زما په هیچا هم دا اعتبار نهٔ وهٔ چې هغوي به ئ زما دپاره په

---

(ح) چبوتره هغې افسرانو ته وائي چې محصول جمع کوي د دې دفتر کار دا دے چې هغه ټول محصولونه جمع کړي چې په تجارتي سامان باندې لګیدلي وي. دا محصول د دوه نیمې روپۍ سیکړه په حساب په ټول درآمد او برآمد باندې لګیدلے دے.

(ط) خزانه: د یو ښارمالیه یا محصول جمع کونکي په خپله هغه روپۍ نغدې نهٔ وصولوي چې کومې هغوي جمع کوي بلکې صرف احکام جاري کوي چې دومره دومره روپۍ دې د هغې ښار په خزانه کښې داخلې شي. او د متفرق اخراجاتو احکام هم جاري کوي. خزانې ته د ادائیګۍ احکام صرف د مختلفو محکمو افسران اعلیٰ جاري کوي.

(ي) په هر یو ښار کښې یو ورکوټے شان فوځ د ضرورت دپاره ساتلے شي د ټولو مختلفو محکمو اخري رپورټونه د صوبې لویې محکمې ته راستوي او د صوبې د لویو محکمو نه د صدر مقام کابل لویې محکمې ته ځي.

(۲) په افغانستان کښې یوه قاعده ده چې هیڅوک هم د یو ښار نه بل ښار ته بغیر د راهداری نه نشي تلے. د دې راهدارو جاري کول د دې محکمې کار دے. کوم خلق چې په ملک کښې دننه سفر کوي نو دا راهداري د راهداری د افسر (پاسپورټ افیسر) د مهر لاندې جاري کیږي او د ښار کوتوال او ګورنر هم په هغې مهر تصدیق لګوي. ولې کوم چې د افغانستان نه بهر ممالکو ته په څهٔ کار ځي نو د امیر خپل زوے په هغه راهداری باندې د امیر په نوم مهر تصدیق لګوي.

پخپله پخپل لاس ليکلې ځکه چې زما په هيڅا هم دا اعتبار نۀ وۀ چې هغوي به ئ زما دپاره په صحيح طريقه وکړي.

په دې وخت کښې دوه معاملې د دومره لوے اهميت وے چې زما د پوره توجه قابل وے. وړومبے خو دا خبره وه چې ما سره د فوځ د تنخواه دپاره او نور سرکاري اخراجاتو دپاره روپۍ نۀ وے دويمه خبره دا وه چې ما سره نۀ وسله وه او نۀ کارتوسونه او نۀ فوځې ساز و سامان. د وړومبې معاملې متعلق خو ما دا شان کار وکړو چې ما يو خپل ټکسال، ودرولو چې هلته به روپۍ د سانچو په ذريعه جوړيدې ځکه چې ما سره د دې کار دپاره مشين نۀ وۀ اوس خو زۀ ډير خوش قسمته يم چې ما سره زما په ټکسال کښې د روپو د جوړولو سانچې شته او هغه هم په هغه طريقه باندې جوړې دي لکه چې په يورپين ملکونو کښې استعماليږي. په دې مضمون باندې به په خپل مناسب ځاے زيات مفصل بحث وشي.

حکومت برطانيه ما له څۀ روپۍ راکړې وے چې د کلکتې په ټکسال کښې جوړې شوې وے ما حکم وکړو چې دا روپۍ دې لرې شي او بيا مې شپږ فيصدي تانبه هغې سره يو ځاے کړه او د هغې نه مې کابلي روپۍ جوړې کړې. ما خپلو افسرانو ته حکم وکړو چې په علاقه کښې سپين زر په بيعه واخلئ او د ويلي کولو نه پس پکښې ډيره تانبه يو ځاے کړئ او روپۍ ترينه جوړې کړئ. په دې طريقه ما ډيره منافع وکړه. د دې نه علاوه ما حکم وکړو چې هغه ټولې روپۍ دې خزانه کښې داخلې شي کومې چې د وړومبي حکومت د لاندې خلقو قرض اخستي دي. او يا ئ تالا کړې دي او د هغه ټولو رقوماتو د داخلولو حکم مې هم وکړو کوم چې هغه حکومت په سرکاري معاملاتو کښې د ادائيګۍ دپاره امانت ورکړې شوې وے ليکن لا هم هغه شان دا ټول رقومات هغوي سره وو او په نور کار کښې ئ خرڅ کړي وو.

د دې عام اعلان نه پس ډيرو خلقو چې د چا په ذمه دا روپۍ وے هغوي په خزانه کښې داخلې کړې ليکن کومو خلقو چې ادائيګۍ کښې ټال مټول کولو نو د هغوي نه د وصولۍ دپاره ما کلکټران مقرر کړل او هغوي ته مې هدايات ورکړل چې په دې قرضدارانو زور واچوئ چې هغوي دا روپۍ ادا کړي. د دې نه علاوه ما اکاونټنټان مقرر کړل چې د هغوي کار حساب کتاب معائنه کول او دې خبرې ته کتل وو چې ټول غير ادا شوي ټيکسونه دې وصول شي.

د بغاوت يا د جنګ د خطرو نه د ملک د بچ کولو دپاره ما حکم وکړو چې فوځې سامان او د خوردونوش سامان دې په کافي مقدار کښې جمع شي. او د باربرداری څاروي دې په بيعه واخستې شي او هر هغه څيز چې فوځ سره تعلق لري هغه دې په ښۀ حالت کښې کړې شي. په دې طريقه زۀ د هرې ناګهاني واقعې دپاره تيار شوم.

د دویم مشکل حل کولو دپاره (چې کوم ما بره بیان کړې) یعنې د سامان جنګ کمي کولو دپاره ما ټول دستکاران نوکران کړل چې رائفلونه جوړ کړي. توپې او ګولې په قالبونو کښې جوړې کړي او په لاسونو باندې کارتوسونه جوړ کړي ځکه چې ملک کښې مشینري نهٔ وه مګر کومې د لاس کارخانې چې زما نیکهٔ په کابل کښې زما د پلار او زما د نګرانی د لاندې جوړې کړې وې او د هغې ذکر ما وړومبے په دې کتاب کښې کړے دے په هغه کارخانو لا هم هغه شان کار کیدو اګرچې په وړه پیمانه. چونکې دا کارخانې اوس په خراب حالت کښې وې نو ما هغه ټولې په لویه پیمانه باندې جوړې کړې. ما خپلو افسرانو ته حکم وکړو چې هر څومره جنګي سامان چې تاسو له د دې ملک د هغې خلقو نه په لاس راتلې شي چې چا ډیره وسله او کارتوسونه لوټ کړي وو یا د هغې خلقو نه چې چا سره د دې سامان ذخیرې دي هغه په بیعه واخلئ په دې طریقه ما په لږه موده کښې هر کله چې زهٔ د ایوب برخلاف په جنګ کولو مجبور شوم نو پنځلس زره د توپو ګولې اګرچې لږ شان په برباد شوي حالت کښې وې او دغه شان نوره وسله او کارتوسونه مې په بیعه واخستل دا انتظامات زما د ملک دپاره بیشانه ډیر مفید ثابت شول. بیا ما د شیر علي مرحوم د فوځ نه یو څو بهترین فوځي افسران منتخب کړل او نور هغه ټول افسران مې هم راوبلل چې چا زما د کمان لاندې زما د جلاوطنی نه وړومبے زما سره نوکري کړې وه. دغه شان ما په لږه موده کښې یو لوے او مضبوط فوځ تیار کړو. ما د جبري خدمت زړه قاعده چې د شیر علي په زمانه کښې رائج شوې وه منسوخ کړه او د هغې په ځاے مې د رضاکارۍ برتي شروع کړه. یعنې دا چې د هر چا به په فوځ کښې نوکري خوښه وه او د ملازمت دپاره به موزون وۀ نو هغه به برتي کیدے شو.

په هرې یوې چاوڼۍ کښې او د هرې یوې پلټنې دپاره ما هسپتالونه پرانستل (۱) چې په هغه ځاے کښې به د زخمي او ناجوړه سپاهیانو علاج کیدو. ما د سپاهیانو د تعلیم دپاره سکولونه هم جوړ کړل د مسافرانو د حفاظت دپاره ما محافظان مقرر کړل او د خپل ملک سوداګرانو له مې دا تسلي ورکړه چې تاسو به لارو باندې بې خوف و خطر سفر کولے شئ او بیا مې هغوي له ښه ډاډګیرنه ورکړه چې د ملک درآمدي او برآمدي تجارت له ښه ترقي ورکړئ.

بیا ما سرکاري د سروے افسران مقرر کړل چې هغوي لارې جوړې کړې او کاروان سرائ

---

(۱) دیسي حاکمانو به په دې هسپتالونو کښې کار کولو تر 1895ء پورې خیراتي هسپتالونه په افغانستان کښې نهٔ وو د کومو هسپتالونو ذکر چې امیر کړے دے هغه د فوځ دپاره مخصوص وو او د اولس خلق به دوۀ ډسپنسرو ته د علاج دپاره تلل. په یوې ډسپنسرۍ کښې یورپین علاج کیدو اوپه بله کښې به دیسي دارو کیدل. د دې دوه ځایونو نه به خلقو خپل حسب ضرورت ټول داروګان مفت وړل. دا ډسپنسرۍ هم د عبدالرحمٰن د حکومت نه وړاندې نهٔ وې.

جوړې کړي او نور تول هغه قسماقسم انتظامات وکړې چې په هغې مسافرو ته ارام او حفاظت حاصل شي او مک ترې خوشحاله او پرامن شي.

زۀ پـه تفصيل سره هغه مختلف معاملات نشم بيانولے چې کوم ته ما د خپل سلطنت په ابتدا کښې پـه دې غرض توجه کړې وه چې په ملک کښې دې يو منظم طرز حکومت رائج شي. دا لانـديـنـې قصه به د حکومت او د هغې د ضروري محکمه جاتو اصلي حالت لکه چې څنگه هغه زما د عهد حکومت نه وړومبے وۀ ظاهر کړي.

يـو سـړي يـو څـو تـنـو له ټيکه ورکړه چې ماله باغ ولگوئ او د دې غرض دپاره هغۀ هغـوي لـه يـو پيشـگـي رقـم ورکړو چې دا کار به تاسو تر فلاني تاريخ پورې خلاصوئ ټيکه دارانـو روپۍ ولگولې او د باغ د لگولو کار ئ بالکل هير کړو چنانچه کومه ورځ چې د باغ د مـکـمـل کيـدو دپـاره مـقـرر وه نو هغوي مالک له خبر ورکړو چې باغ تيار دے او هغوي هغه مـالک يـوې زمـکې له بوتلو ليکن هغۀ ووئيل چې په دې زمکه کښې خو بوټي نشته هغوي په جـواب کښـې ووې چې د بـوټو نه بغير نور هر څۀ تيار دي ليکن د باغ د اوبۀ کولو دپاره خو هـلـو لبنتـے نشته. هغوي بيا ووئيل چې بغير د آبپاشۍ د لبنتي نه نور هر څيز مونږ کړے دے. مـگـر هغۀ ووئيل چې د باغ نه چارچاپيره نۀ باغ شته او نۀ ديوال چې د څاروو د تباهي نه بوټي بـچ کـړې د دې هـم هـغـۀ له هغوي بعينه هغه شان جواب ورکړو چې څرنگ ئ ورله وړومبے ورکـړے وۀ . او وې وئـيـل چـې زمـونږ پـه ټيـکه کښې صرف يو ديوال پاتې دے ولې هغۀ بيا ووئـيـل چـې زمکه خو لا هم يوے شوے نۀ ده. د دې هم حسب معمول جواب ورکړې شو چې د يوې نه بغير بل هر څيز سر ته رسولے شوے دے. د افغانستان حکومت هم په دغه شان وۀ بل هر څيز مکمل وۀ. ولې د کوم څيز چې به ضرورت وۀ نو هغه به نۀ وۀ.

پـه کـومو ورځو کښې چې زۀ د کابل د معاملاتو او د سمت جنوب مشرق د معاملاتو پـه درستگۍ کښې مصروف وم نو ما سردار عبدالله خان توخې د بدخشان گورنر مقرر کړو ما د خپل ترۀ زوے محمد اسحاق سره د عبدالقدوس خان د ترکستان وائسرائے مقرر کړل. دغه شـان هـر يـو کـس چـې د مـلک پـه جنوب مغربي صوبو باندې حکمران وي نو هغه هم زما د هـدايـاتـو مـطـابق تول کار کوي. جنوب مشرقي علاقه د فيرنگيانو د لاندې وه او هغوي شير عـلـي والـي په هغې مقرر کړے وۀ او لا هم هغه شان هغوي په قندهار کښې وو مگر انگريزانو دغـه والـي د قـندهار نه لرې کړو . او هغۀ له ئ يو پنشن مقرر کړو او کراچۍ کښې ئ ورله د استـوگنې ځاے ورکړو. په يويشتم اپريل 1881ء انـگـريـزي فوځ د قندهار ښار خالي کړو او ماته ئ حواله کړو د دې دپاره ما هغه ځاے د خپل حکومت يوه صوبه کړه.

څـومره چـې زۀ فـکـر کوم نو فيرنگيانو والي د قندهار نه په مفصله ذيل وجوهاتو لرې کړے وۀ :

☆ محمد ایوب خان په قندهار باندې د حملې کولو دپاره ټول ضروري انتظامات او تیارۍ په هرات کښې کړې وې او یو لوی فوځ ئې راجمع کړے وهٔ. په شیر علي کښې دومره طاقت نهٔ وهٔ چې د هغهٔ مقابله ئې کړې وې ځکه چې هغهٔ وړومبے هم ایوب خان سره د جنګ کولو په موقع خپله کمزوري ښودلې وه.

☆ د قندهار عام خلق او بالعموم نور مسلمانان د والي برخلاف وو هغه د خلقو ناخوښ وهٔ او ورسره به هر وخت د بغاوت او قتل ویره وه.

☆ ما هم د خپل سلطنت نه د قندهار د جدایۍ متعلق څهٔ عهدنامه نهٔ وه کړې او نهٔ مې د هغې متعلق رضامندي ښکاره کړې وه بلکې ما قندهار د خپل پلار نیکهٔ کور او د افغانستان د ځنې فرمانرواؤ صدر مقام ګڼلو. ولې په دې موقع څهٔ وخت چې انګریزانو ماته سوال وکړو چې تهٔ په دې ښار قبضه وکړه نو ما دا خبره منظوره کړه اګرچې د ډیر غورو حوض نه پس.

یو طرف ته زما دا خیال وهٔ چې د دې ښار په اخستو باندې زما حیثیت په ډیر خطر کښې پریوځي. د دې وجه دا وه چې ماته معلومه وه چې ایوب خان په قندهار باندې د حملې کولو دپاره بالکل تیار وهٔ او ماته ئې هیڅ موقع د هغې د مدافعت د تیارۍ کولو دپاره نهٔ راکوله. ماته دا هم معلومه وه چې چونکې د کابل خواوشا ملک پخپله ډیر د اړي ګړي په حالت کښې پروت وهٔ نو کهٔ چرې زهٔ په قندهار کښې د ایوب خان برخلاف د جنګ کولو دپاره د کابل نه لاړ شم نو زهٔ به تر ډیرو میاشتو پورې بهر یم او دغه شان به زما د غیر حاضرۍ په دوران کښې کابل ته خطره پیښه شي.

د دې په مقابله کښې د قندهار نه بغیر د کابل حکومت دا شان وهٔ لکه چې د یو سر پوزه نهٔ وي. یا یوه قلا وه چې د هغې دروازه نهٔ وي. زهٔ په دنیا هغه اخري سړے وم چې د خپل قوم په مخکښې دې زهٔ بزدل ښکاره شم او یا دې خلق دا خیال وکړي چې زهٔ د هغو خطرو نه ویریدم چې کومې زما د پلار نیکهٔ په صدر مقام باندې د قبضې کولو په لاره کښې حائل وې.

هر کله چې ما په دې فائدو او نقصانونو باندې غور وکړو نو زهٔ په دې نتیجه ورسیدم چې اګرچې خطره ډیره ده لیکن بیا هم ما حسب معمول په خدای پاک باندې توکل وکړو او په دې ښار باندې مې قبضه کول منظور کړل او بیا هاشم خان مې د ښار ګورنر مقرر کړو.

# نهم باب

د امیر عبدالرحمٰن خان د تخت نشیني سره چې کوم واقعات اول اول دهٔ ته پیښ شو د هغې بیان کول، د قندهار په مهم د امیر صاحب روانیدل، او په خپل ځاے شهزاده حبیب الله خان کښینول، د سردار ایوب خان سره په قندهار کښې جنګ کول او د سردار ایوب خان د فوځ بعضې سپاهیان امیر صاحب ته راوړیدل، او د امیر صاحب فتحیاب کیدل، بل طرف ته په هرات د امیر صاحب د فوځ قبضه کول، د ایوب خان ایران ته تښتیدل، د افغانستان د خانانو، امیرانو د ظلمونو بیان او د هغوي سرکوبي کول، دغسې د ځنو جاهلو ملیانو د نفس پرستی او فریب خاتمه کول او په ملک کښې امن قائمول.

ما وړومبې هم د دې خبرې ذکر کړے دے چې هر کله زهٔ اول د کابل په تخت کښیناستم نو زما ژوندون د ګلونو بستره نهٔ وه د دې نه برخلاف زهٔ په هر قسم مشکلاتو کښې راګیر وم. دغه وخت زما وړومبې سخت جنګ خپلو خپلوانو سره د خپل رعایا خلقو سره او زما د قام خلقو سره شروع شو. زما لا په کابل کښې نیمې پښې نهٔ وې لګیدلې او ماته د فوځې تیاری کولو لا هیڅ موقع په لاس نهٔ وه راغلې چې زهٔ په جنګ کولو باندې مجبور شوم. هر کله چې انګریزانو محمد ایوب له شکست ورکړو نو هغهٔ بدستور په هرات باندې قبضه وساتله او د شکست خوړلو د ورځې نه هغهٔ خپل ځان د جنګ په تیاری کښې مصروف وساتلو. د یو ډیر مضبوط فوځ د جمع کولو نه پس هغهٔ د هرات نه په قندهار باندې د حملې کولو دپاره راروان شو. لکه چې څرنګ وړومبې ذکر شوے دے نو ماته وړومبې نه دا خطره معلومه وه لیکن د هغې مقابله کول ضروري وو.

داسې ډیرې خبرې چې د محمد ایوب په حق کښې وې او زما برخلاف وې هغهٔ سره زما په نسبت بهترین جنګي سامان وسله او یو لوے فوځ وهٔ. او د دې ټولو نه لویه خبره دا وه چې بې علمه ملیانو زما برخلاف د جنګ اعلان کړے وهٔ او دا خبره ډیره د هغهٔ په حق کښې وه هغوي دا وئیل چې زهٔ د فیرنګیانو ملګرے یم او ایوب غازي دے. هغهٔ سره دولس زره منظم سپاهیان د لاندیني افسرانو د کمان لاندې وو:

حسین علي سپه سالار اعظم، نائب حفیظ الله نائب سالار اعظم، جنرل تاج محمد د ارسلا خان غلجي زوے، سردار حسن خان، سردار عبدالله خان چې د سردار سلطان جان زوے وهٔ او د محمد عظیم خان نمسے وهٔ، سردار احمد علي چې د محمد علي زوے وهٔ، نور خان ، سردار عبدالسلام د قندهار او قاضي عبدالسلام چې د قاضي محمد سعید زوے وهٔ.

هغهٔ موسیٰ جان د یعقوب زوے او خوشدل د شیردل زوے یو څو زره سپاهیانو سره په هرات پریښودل. سردار شمس الدین او سردار هاشم چې په قندهار کښې زما ګورنران وو

هغوي دا لاندیني سرې د ایوب د حمله آور فوځ په مقابله کښې مقرر کړل :

غلام حیدر توخي سپه سالار اعظم، سردار محمد حسن چې د قندهار د سردار خوشدل زوے وۀ، او قاضي سعید الدین چې اوس د هرات وائسرائے دے، سره د اوو رجمتهو د پیاده، دوه توپخانې، څلور رجمتې د باقاعده رسالې او درې زره ملیشیا سوارۀ او اووۀ رجمتې د ملیشیا پیاده.

په شلم د جولایی د کاریز په مقام چې د ګرشک په خوا کښې پروت دے دواړه فوځونه مخامخ شو او سخت جنګ ونښتو. وړومبے خو دا شان معلومیده لکه چې فتح د قندهار د فوځ په حق کښې کیدونکي وي ځکه چې هغوي ډیر په بهادرۍ جنګ وکړو قریباً قریباً د ایوب ټوله رساله پشا شوه. شکست ئ وخوړو او اخوا دیخوا وتښتیدل. د ایوب د فوځ نه صرف اتیا مشران او سرداران سره د لړو ملاتړو په میدان کښې پاتې شول. دې خلقو دا خیال وکړو چې اوس په تښتیدو سره خپل ځان بچ کول ناممکن دي ځکه چې ټول فوځ وتښتیدو او په دې وجه هغوي د بهادرۍ مرګ بهتر وګڼلو په نسبت د دې نه چې هغوي په تیښته کښې قتل شي. پس هغوي ټول متفق شو او د قندهاري فوځ په اصلي حصه باندې ئ تاخت وکړو او نیغ په سپه سالار اعظم او په قاضي سعید الدین باندې ورغلل چنانچه دې یو موټي مګر بهادرانو افسرانو دې دواړو له شکست ورکړو او هغوي قندهار ته وتښتیدل. سردار عبدالله او د ایوب د فوځ نور ډیر افسران په دې جنګ کښې قتل شو. ایوب وړاندې روان شو او بغیر د مزید مقابلې یا د جنګ نه ئ د قندهار ښار واخستو.

زما په افسرانو کښې هاشم او غلام حیدر قلات ته وتښتیدل او سردار حسن کامې ته وتښتیدو. شمس الدین خپل ځان په خرقه کښې پټ کړو. (خرقه د هغې څادر نوم دے چې کوم حضرت محمد ﷺ په سر کړے وۀ او د هغې زمانې نه مسلمانانو پشت په پشت په ډیر حفاظت سره ساتلے وۀ. او اوس په قندهار کښې دے. د قندهار په خلقو کښې دا دستور دے کۀ چرې یو سړے څۀ جرم وکړي ولې څۀ وخت چې هغه هغې کمرې ته ورننوځي چې په کومه کښې دا څادر پروت دے نو بیا هیڅوک هم هغۀ ته څۀ نۀ وائي تر څو چې هغه په خپله رضا د هغه ځاے نه راوتے نۀ وي.) مګر محمد ایوب هغۀ سره لوظ وکړو چې کۀ چرې تۀ د دې پاک ځاے نه راوتے نو زۀ به درله سزا در نۀ کړم ولې څۀ وخت چې هغه راووتو نو هغه ئ په کوتکو باندې ووهلو.

هر کله چې ما دا واوریدل نو زۀ مجبور شوم چې قندهار ته پخپله روان شم او حبیب الله خان خپل مشر زوے په کابل کښې ګورنر کړم او پروانه خان سالار اعظم او د فوځ مشر کړم. ما سره قریباً دولس زره د جنګ قابل سړي موجود وو. او مفصله ذیل افسران هم وو :

غلام حیدر چرخي سپه سالار اعظم، فرامرز خان سپه سالار اعظم، (وړومبے مړ دے

او دویم په هرات کښې دے) او غلام حیدر خان توخي هم کمانډنټ انچیف وۀ نور هم ډیر افسران راسره وو چې د هغوي د نومونو ذکر کول ضروري نۀ دي.

هر کله چې زۀ قندهار ته د ایوب د فوځ چې په شمار کښې شل زره وو مقابلې ته روان شوم نو په لاره ما سره د توخي او اندړ قبائلو لس زره سړي هم شامل شو. ډیرو ملیانو یوه مذهبي فتوئ باندې مهرونو لګولي وو چې امیر عبد الرحمٰن کافر دے ځکه چې هغه د انګریزانو نائب دے. بعضې خلق وائي چې ایوب دا ملیان مجبور کړي وو چې هغوي د خپلې مرضۍ نه برخلاف په دې تحریرونو باندې مهرونه لګولي وو.

د یو څو ورځو د تیز مزل نه پس زۀ تموریان نومې یو کلي ته ورسیدم چې د قندهار نه څلور میله دے ایوب خپل کیمپ چې د خیل ملا عالم په خوا کښې وۀ او د قندهار نه یو میل وۀ پریښودو او د قندهار د ښار چاوڼۍ ته واپس شو. په دویشتم ستمبر 1881ء دواړه فوځونه د زوړ قندهار په کنډراتو کښې یو بل ته مخامخ شول. د ایوب فوځ د یو څو غلطو په سبب چې د جنګ د شروع کیدو نه وړومبے د ایوب د لاسه شوے وے زړۀ بائللے وۀ. هغه غلطۍ دا وے:

☆ هغه زما د فوځ د پیش قدمۍ د مقابلې کولو دپاره د قندهار د ښار نه بالکل بهر را ونۀ وتو او په ځاے د دې چې هغۀ جارحانه کارروائي کړے وے او په ما ئ حمله کړے وے نو هغۀ ماله د حملې کولو اختیار راکړو. او په دې رنګ هغۀ خپله بزدلي ښکاره کړه.

☆ هغۀ دا غلطي هم وکړه چې د قندهار ښار ئ په خپله قبضه کښې ونۀ ساتلو.

☆ هغۀ د خیل ملا عالم د کلي نه په واپس کیدو کښې هم غلطي وکړه.

☆ د جنګ د ابتدا نه تر اخره پورې هغه په جنګ کښې پخپله شامل نشو بلکې هغۀ د جنګ تماشه د خپل کیمپ نه نیم میل لرې د کوتل چهل زنا د سوکې نه کوله. د دې ټولو نتیجه دا وه چې د هغۀ فوځ کمزور دله شو. ځکه چې هغۀ هغوي ته وښودل چې زۀ پخپله په جنګ کښې د شاملیدو نه ویریږم.

☆ هغۀ خپله رساله چې اووۀ زره سوارۀ وو د برني غرۀ د غونډۍ شاته په دې غرض پټه کړې وه چې عین د تنګسیا په وخت کښې به هر کله چې جنګ ښۀ په زور وي نو زۀ به رسالې ته د مضبوط چپاؤ کولو حکم وکړم.

مګر هغۀ دا شان خوفزده شو چې د هغۀ نه د رسالې موجودګي بالکل هیره شوه او دغه شان هغوي ته د جنګ د ابتدا نه تر اخره پورې د جنګ موقع په لاس ور نۀ رغله. واقعه دا ده چې دا ټول وخت هغوي د غونډۍ شاته ولاړ وو او هغه یو ځل هم میدان جنګ ته د خپل فوځ د ډاډګیرنې دپاره راښکاره نشو باوجود د دې د هغۀ بعضې قابلو او بهادرانو افسرانو او ښۀ توریالي سپاهیانو ډیر ښۀ جنګ وکړو. د هغۀ توپخانې هم چې د زوړ قندهار د غونډۍ په

سوکو باندې په يو ډير مضبوط مقام باندې پرتې وې او ښۀ په انتظام باندې وچليدے ډير ښۀ کار وکړو. پوره دوه ګينټې پورې جنګ ډير سخت وۀ. او دا پته نۀ لګيده چې فتح به د چا وي زما فوځ هم په ښي طرف او هم په ګس طرف ورو ورو په شا کيدو باندې ګوټې پورې کړې ليکن په قلب کښې چې کوم زما اصلي فوځ وۀ او هلته زۀ پخپله د خپلې محافظې دستې د يو زر سپاهيانو شاته ولاړ وم نو هغوي په دې ډاډګيرنه چې زما د موجودګۍ په سبب هغوي ته حاصله وه ډير ښۀ کار کولو هر يو سپاهي په جنګ کښې دومره سخت مصروف وۀ چې زما يو څو اردليانو هم جنګ طرف ته مخه وکړه او ما سره زما په خوا کښې يو سائيس پاتې شو. دغه وخت چې زۀ ښۀ وړاندې لاړم نو د ايوب فوځ کښې د کمزورۍ نښې پيدا شوې او د پياده هغه څلورو رجمټو چې چا په وړومبي شکست کښې د ګرشک په مقام د محمد ايوب اطاعت قبول کړے وۀ هغوي خپل نيت بدل کړو زما د عهد حکومت نه وړومبے د ټول منظم فوځ د سپاهيانو دا عامه لار وه چې څۀ وخت به هغوي يو فريق د بل فريق په نسبت زياتي مضبوط وليدو نو هغوي به کمزورې ډډه پريښوه او مضبوطې ډډې سره به شامل شو. نو هر کله چې دې څلورو رجمټو وليدل چې فتح زما په طرف راتلونکې ده نو هغوي سمدستي د خپلو ټوپکونو خلې د زوړ ښار نه بل طرف ته واړولې او د ايوب د فوځ په هغې دستې باندې ئ ډزې شروع کړې چې څوک زما فوځ سره په سخت جنګ کښې مصروفه وو. د دې په مقابله کښې هر کله چې زما فوځ دا واقعه وليده نو هغوي نور هم مخکښې زور وکړو او په خپلو توپو او ټوپکونو ئ دشمن د مخې نه په خلۀ خلۀ ووهلو. چنانچه هغوي يو خوا بل خوا وتښتيدل. ايوب خان چې شکست وخوړو نو هرات ته واپس لاړو.

هر کله چې زۀ کابل نه قندهار ته روانيدم نو ما سردار قدوس خان ته هدايات ورکړي وو چې د ترکستان نه په هرات باندې پيش قدمي وکړه ځکه چې زما دا خيال وۀ چې ايوب به هيچرې هم د دې ښار د حفاظت بندوبست د حملې برخلاف پوره طور نۀ وي کړے. په دې باندې سردار عبدالقدوس خان څلور سوه د رسالې سورو، څلور سوه پياده سپاهيانو، او دوه د غرۀ توپو سره سمدستي حمله وکړه لوے نائب خوشدل د ايوب د لاس نه په هرات کښې د ښار د حفاظت دپاره مقرر شوے وۀ هغۀ يوه ورکوټې شان دسته زما د دې فوځ برخلاف واستوله ليکن زما سپاهيانو هغوي له شکست ورکړو. او زما سپاهيان هرات ته راورسيدل. خوشدل دومره زړور نۀ وۀ چې د ښار نه راوتے وے او په خپله ئ په جنګ کښې حصه اخستې وے. هغۀ دا تجويز کړے وۀ چې هره ورځ به ئ يو څو سوه سپاهيان د قدوس خان برخلاف د جنګ دپاره راليږل. ليکن هغوي به بغير د جنګ کولو نه د قدوس اطاعت اختيار کړو په څلورم اګست قدوس خان د يوې سختې حملې کولو نه پس د هرات قلا واخسته.

د سردار قدوس خان سره زما د لوستونکو د تعارف کولو دپاره ما له دا ذکر کول

پکار دي چې په کومو ورځو کښې انګريزان په کابل کښې وو نو هغه ما سره د يو ځاے کيدو دپاره تاشقند نه راروان شو ليکن چونکې زۀ پخپله کابل ته راروانيدم نو څۀ وخت چې هغه سمرقند ته راورسيدو نو ما هغۀ ته وليکل چې تۀ زما په انتظار کښې هم هلته کښينه. لکه چې ما د دې نه وړومبے په بل مقام کښې ذکر کړے دے ما سردار سرور خان، اسحاق او قدوس د ترکستان د نظام حکومت د سنبالولو دپاره راستولي وو او قدوس خان تر نن ورځې پورې زما يو ډير اعتباري او قابل قدر نوکر دے.

ايوب خان چې هرات ته واپس روان شو نو په لاره خبر شو چې زما د سپاهيانو د لاس نه هغه ښار هم ووتو او هغه اوس د سردار قدوس خان په قبضه کښې دے په دې وجه هغه مشهد ته چې په ايران کښې دے وتښتيدو. بيا ما فرامرز (دا سړے ډير هردلعزيز کمانډنټ انچيف او د امير اعتباري سړے وۀ د دۀ تربيت د ابتدا نه په طور د امير د غلام بچه شوے وۀ. او د هرات غوندې اهم ځاے بيا د هغۀ په حواله شوے وۀ.) سپه سالار اعظم سره د څۀ رسالې پياده او توپخانې مقرر کړو او حکم مې ورکړو چې فوراً هرات ته روان شه په قندهار کښې د ضروري انتظاماتو کولو نه پس زۀ واپس کابل ته روان شوم. په مليانو کښې يو سړي چې په ما ئ د کفر فتوىٰ لګولے وه د هغۀ نوم عبدالرحيم اخون وۀ. (۱) چې د اصل نه کاکړ وۀ (چې د قندهار يوه قبيله ده) د خرقې د لاندې پناه اخستې وه ما حکم وکړو چې د دا شان پليت زړۀ سپے لکه چې څنګه دا سړے وۀ دے دې په داسې پاکه ستانه کښې نۀ پاتې کيږي چنانچه هغه مونږ په زور د دې ځاے نه راوويستو او ما په خپل لاس هغه قتل کړو.

زۀ چې قندهار نه کابل ته واپس شوم نو زۀ د پروانه خان (۲) نائب کمانډر انچيف چې زما يو ډير اعتباري نوکر وۀ او د حبيب الله خان زما د زوي په خدماتو ډير زيات خوشحاله شوم. زما زوے لا ورکوټے هلک وۀ ولې سپاهيانو کښې به ګرځيدلو او زما په نوم به ئ سردارانو سره خبرې کولې او دغه شان به ئ ډير کارونه ايستل. نۀ خو به هغه خوفزده کيدلو او نۀ به ويريدلو. او په هره يوه خبره کښې به هغه د پروانه خان، مرزا عبدالمجيد خان او د

---

(۱) د دې سړي زوے مولوي عبدالرؤف وۀ. امير عبدالرحمٰن دا مولوي عبدالرؤف په کابل کښې د مليانو په امتحان اخستو مقرر کړے وۀ او هغه د امير موصوف په دربار کښې شامل وۀ)

(۲) امير عبدالرحمٰن په دې سړې باندې دومره اعتبار کولو چې د حبيب الله خان په بل افسر يا رشته دار ئ نۀ کولو. د جلاوطنى په زمانه کښې هغه د امير ملګرے وۀ او هر کله چې يو ځل امير ته د روپو دپاره ډير تکليف وۀ نو دې سړي خپل ځان په طور د مرئي خرڅ کړو دغه شان هغۀ درې څلور ځله ځان خرڅ کړے وۀ خو بيا امير راخلاص کړو. د امير د رعيت خلقو دې سړي سره تر مرګه پورې مينه کوله. دې په 1894ء کښې وفات شوے وۀ بيا د دۀ يو زوے د امير منظور نظر شو او څلور نور زامن ئ د امير عبدالرحمٰن خان د څلورو زامنو منظور نظر وو.)

نورو افسرانو په مشوره چې ما د هغهٔ مشیران مقرر کړي وو چلیدو. زما په غیر حاضرۍ کښې د کوهستان خلقو د حصارک خلقو او د کونړ محمود، عبدالرشید، جمعه خان او محمد جسین د وردک د یو عام بغاوت د وچتولو کوشش کړے وهٔ. لیکن کوم خلق چې ما په کابل کښې پریښي وو د هغوي د قابلیت، د رویې او د دوستانه تسلو په وجه د دې سازشونو نه هیڅ خطرناکه نتیجه راونهٔ وته.

د محمد ایوب شکست او زما د افسرانو د هرات مسخر کولو زهٔ د خپل پلار نیکهٔ د ټول سلطنت مالک کړم لیکن بیا هم داسې معاملې وے چې د هغې کول پیشتر د دې نه چې ما خپل ځان د ټول ملک مالک یا بادشاه ګڼلے وے ما دپاره ضروري وو لکه چې څنګه ما بل ځاے ذکر کړے دے د هرې یوې قبیلې مشر هر یو ملا او د هر یو کلي ملک به خپل ځان خودمختار بادشاه ګڼلو او په تیر شوي دوه سوه کاله کښې د دې ملیانو خودمختاري او ازادي د هغوي بادشاه هم نهٔ وه ماته کړے. میران ترکستان او میران هزاره او د غلجو خانان ټول د خپل امیر نه زیات طاقتور وو. نو تر کومه پورې چې د دې خلقو زور وهٔ نو بادشاه به په ملک کښې انصاف نشو کولے. د دې کسانو ظلم او زیاتے ناقابل برداشت وهٔ. د هغوي په لوبو کښې یو لوبه دا وه چې د سړو او ښځو سرونه به ئ پریکړل او په سور کړي تبخي باندې به ئ کښیښودل او چې هغوي به ټوپونه وهل نو دوئ به ئ تماشه کوله. د دې نه نور هم خراب خراب رواجونه په دې خلقو کښې جاري وو. مګر د دې ویرې نه چې زما د دې کتاب لوستونکو ته صدمه ونهٔ رسي زهٔ د هغې ذکر نهٔ کوم. د هر یو خان د هر افسر د هر شهزاده او پخپله د بادشاه هم د خپلو قاتلانو ډلې وے او په دوئ کښې به هر یو ځان له اجرتي ډاکوان او غلهٔ ساتلي وو او هر کله چې به ډاکوانو مسافران، تاجران او د ملک نور دولتمند سوداګران قتل کړل او د هغوي مال او دولت به ئ تالا کړو نو د غلا مال به دې خانانو وغیرهٔ خپل دې نوکرانو سره تقسیم کړو. بیا په دې ډاکوانو کښې د هر یو کس خپل ځان له ډلې وے چې هغوي به د ټوپکونو او د توپو سره مسلح وو. زهٔ به په دې مخکښې باب کښې هغه قصه بیان کړم چې په دې ډاکوانو کښې دوهٔ کسانو سره چې د یو نوم سادو او د بل نوم دادو وهٔ او زما فوځ له ئ څو څو ځل شکست ورکړے وهٔ زما څومره سخته جګړه شوې وه. په دې کښې یو کس اوس په پنجره کښې زوړند دے. او د لته بند د غرهٔ په سوکه باندې مې هغه پنجره ایښې ده.

دې ملیانو به خلقو ته هغه عجیبه عجیبه مذهبي مسئلې ښودلې چې کومې به د رسول الله صلي الله علیه وسلم په دین کښې نهٔ وے. البته هغه دا شان خبرې وے چې په هر ملک کښې د ټولو اسلامي قومونو د زوال باعث شوے وے. هغوي به خلقو ته دا وینا کوله چې تاسو کار بالکل مهٔ کوئ بلکې د نورو خلقو په مال باندې قبضه کوئ او په خپلو کښې د یو بل

سره جنګیږئ. په دې صورت کښې دا قدرتي خبره وه چې په دې خودساخته بادشاهانو کښې
دې هر يو ځان له د خپل رعيت په خلقو جدا جدا ټيکسونه ولګوي. له دې کبله ورومبي
کار ته چې ما ګوتې کړې هغه دا وهٔ چې د دې بيشماره ډاکوانو او د دروغژنو پيغمبرانو او
دروغژنو بادشاهانو خاتمه وکړم، زهٔ دا تسليموم چې دا دومره ډير اسان کار نهٔ وهٔ او د
پنځلسو کالو مسلسل جنګونو نه پس هغوي يا خو بالاخر زما اطاعت قبول کړو او يا د ملک
نه دا شان وتښتيدل چې لا خو ما جلاوطن کړل او لا هغوي بلې دنيا ته رخصت شول. په
مخکښې باب کښې به زهٔ د دې خانه جنګو مفصل حال وليکم کوم چې زما د حکومت د آغاز
نه تر دې وخته پورې جاري دي. د دې نه پس به زهٔ د خپل ژوند د نورو واقعاتو قصې له واپس
راشم. د ټولو نه ورومبے ضروري دا وه چې زهٔ هغه ټول خلق د ملک نه وباسم چې د هر قسم
انصاف، تهذيب، ترقي، تعليم او د ازادۍ برخلاف وو.

دا شان ډير متعصب او جاهل خلق شته چې د دې خانه جنګو الزام په ما باندې لګوي
چې خلقو سره زما سلوک ډير سخت وهٔ مګر د نن ورځې په ډيرو مهذبو ملکونو کښې هم دا
شان مثالونه شته چې د هغې نه معلوميږي چې هغوي هم د خپل تاريخ په ابتدا کښې د خپل قوم
د هغې خلقو برخلاف په جنګ کولو مجبور وو چې څوک د تهذيب په واقعاتو باندې اول
اول کښې نهٔ پوهيدل. هم په دې صدۍ کښې د انګلينډ مزدورکار جماعتونو د خپل حکومت
برخلاف ډير فسادونه پيدا کړي دي. زهٔ په دې وئيلو فخر کوم چې زما د عهد حکومت په
ډيره لږه موده کښې خلقو تهذيب طرف.ته دومره ښه ترقي کړې ده چې هغه ټول خلق چې د
ډير مال و دولت خاوندان دي هغوي د شپې او ورځې په سلامتۍ سره زما په ټول سلطنت
کښې ګرځيدے شي. حالانکې د دې په مقابله کښې د افغانستان په سرحد باندې د ملک په
هغه حصه کښې چې د برطانيه حکومت د لاندې ده هيڅوک هم يو قدم بغير د يو مضبوط
باډي ګارډ د حفاظت نه وچتولے نهٔ شي.

# لسم باب

د امیر عبدالرحمٰن خان د بادشاه کیدلو سره د خپلو لویو ذمه وارو احساس کول او د خدایے تعالیٰ د مخلوق د خدمت دپاره هر قسم تدبیرونه کول، د الله تعالیٰ په دربار کښې د هغهٔ د مخلوق د خدمت دپاره توفیق غوښتل، او په خلوص سره دعا کول، په وړومبو ورځو کښې چې امیر صاحب ته کوم مشکلات پیښ شو د هغې څهٔ اجمالي بیان کول، د امیر صاحب د یو پخواني خوب (چې دهٔ لیدلے وهٔ) نه دا نتیجه اخستل چې یوه ورځ به دې بادشاه کیږي، دغسې د خواجه احرار د کرامت بیان چې د هغې نه د دهٔ د بادشاه کیدو تعبیر کیدے شي، بیان کول.

ممکن ده چې خلق به دا خیال کوي چې د کومې ورځې نه زهٔ د کابل په تخت کښیناستم نو زما د خوشحالۍ او د عیش زمانه شروع شوه لیکن واقعه دا شان نهٔ وه. د دې برخلاف هم د هغې ساعت نه زما د ازادۍ زمانه ختمه شوه او زما د مشکلاتو او نااميدو فکرونو او غمونو ورځې ډیرې شوې. د دې کتاب لوستونکي په دې خبره خبردار وي چې اګر کهٔ ما په هغه وخت کښې چې زما پلار او ترهٔ عظیم خان د کابل امیران وو د سلطنت په کارونو کښې لویه حصه اخستې وه ولې ذمه واري ټوله زما د پلار او ترهٔ په سر وه د دې متل په صداقت کښې هیڅ شک و شبه نشته چې: "هر څومره چې د سړي حیثیت لوے وي هغه هومره د هغهٔ ذمه واري ډیرې وي او هر څومره چې ذمه واري ډیرې وي هغه هومره فکرونه ډیر وي."

زمونږ مذهب مونږ ته دا خبره ښیي چې هر یو سړے به د قیامت په ورځ د خدایے په مخکښې د خپل عمل ذمه وار وي لیکن بادشاهان به صرف د خپلو عملونو ذمه وار نهٔ وي د دې نه علاوه به هغوي د خپل رعایا د امن او د ارام جوابده وي چې کوم د هغهٔ خالق د هغهٔ حفاظت کښې ورکړي وو. مولانا روم چې یو ډیر لوے ولي الله تیر شوے دے هغه په خپل یو نظم کښې یوه دا شان قصه بیانوي:

"د یوې بیزې پښه د بغداد په پُل باندې زخمي شوه او د هغه زمانې خلیفه عمر رضي الله عنه باندې خدایے پاک ډیره ملامته ووئیله."(١)

---

(١) په دې شعر کښې مولانا روم هغې واقعې ته اشاره کړې ده چې کوم عام طور سره اکثر مسلمانان ربښتوني ګڼي وائې چې د حضرت عمر رضي الله عنه خلیفه ثاني په عهد سلطنت کښې د بغداد یو پُل په ډیر خراب حالت کښې وهٔ یوه ورځ اتفاقاً د بیزو یوه رمه په دې پُل تیریدله چې د یوې بیزې پښه په کاني ولګیده او زخمي شوه. د عمر رضي الله عنه نه خدایے پاک جواب وغوښتو چې چونکې تهٔ بادشاه وے او د دې پُل په ښهٔ حالت کښې د ساتنې تهٔ ذمه وار وے نو تا دا غفلت کړے دے چې د دې پُل مرمت دې په وخت نهٔ دے کړے.)

پـه حـديـث شريف کښې راغلي دي چې د قيامت په ورځ به خداوند کريم وړومبے د دنيا د بادشاهانو نه دا شان تپوس کوي :

" نن د دې دنيا حکومت د چا دے؟ بادشاهان به ټول بالاتفاق ووائي اے خدايه هم ستا دے ځکه چې هم تهٔ قادر مطلق ئې. او بيا به خداوند کريم تپوس وکړي کهٔ چرې تاسو ټول په دې خبر وئ نو تاسو ولې د هغې خلقو د امن او د ارام کوشش نهٔ وهٔ کړے چې څوک ما تاسو ته سپارلي وو؟"

پـه دې لـحـاظ زهٔ بـه د قـيـامـت په ورځ په خپل قوم کښې د امن د قائمولو د ټولو ذمه وارو جـوابـده يـم او پـه دې لـحـاظ چې زما ملک په ډير ابتر حالت کښې پروت وهٔ نو زهٔ ډير غـمـزده او رنـجـيـده خـاطـر شوم. چې ما به د ملک حالاتو او واقعاتو ته کتل نو ما به دا خيال کـولـو چـې دا نـــهٔ صـــرف مشـکـــل ده بـلـکـې نـــامـمـکـن ده چې زهٔ د دې مـلـک انـتـظـام وکـړې شـم او هغې له ترقي ورکړې شم. مګر د چا په خيال کښې هم دا خبره نهٔ راتله چې افـغـانسـتـان بـه داسې عـجـيـب و غـريـب ترقي وکړي لکه چې څرنګ هغهٔ د هغې ارحم الـراحـمـين پـه مدد سره زما په دې مختصر عهد حکومت کښې وکړه. نهٔ صرف دا چې د دې ملک د تباهۍ ټول اسباب په لويه پيمانه موجود وو بلکې د ترقۍ ټول ذرائع قريباً قريباً مفقود وو او نـهٔ صـرف دا چـې د تـرقۍ اسباب کم وو بلکې دا هم نهٔ معلوميدل چې د هغې وجود هم شته او کهٔ نه. ليکن چونکې الله تعالیٰ دا ذمه واري په ما ايښودې وه نو ما هغهٔ ته سوال وکړو او دُعا مې وکړه چې تهٔ ما سره د بني نوع انسان د رمې په ساتنه کښې امداد وکړه کوم چې تا زما حـفـاظت ته سپارلي دي. د دې دپاره چې زهٔ نهٔ د دې دنيا په نظر کښې رسوا شم او نهٔ د قيامت پـه ورځ. مـا زړهٔ ونـهٔ بـائـلـلو او د خدائے پاک په دې وعده مې عقيده ولرله چې کومه هغهٔ په قـرآن پاک کښې خپل رسول مقبول محمد صلي الله عليه وسلم سره کړې ده. کوم خلق چې په خدائے پاک توکل کوي او زړهٔ نهٔ بائلي او صبر کوي نو د خدائے امداد د هغوي دپاره کافي شافي دے. هغه په حقيقت کښې د خلقو ملګرے دے چې څوک بغير د صبر د پريښودلو نه کـار کـوي. مـخـتـصـر دا چـې کـهٔ چرې زهٔ هغه ټول تکليفونه او مصيبتونه چې په کومو کښې زمـونـږ ملک دا وخت پروت وهٔ بيان کړم نو يو پوره کتاب به د هغې د بيانولو دپاره ضروري وي لـه دې کـبـلـه به زهٔ د خپلو لوستونکو د دلچسپۍ دپاره يو مختصر شان بيان د افغانستان د هغې حالاتو متعلق ورکړم کوم چې زما د تخت نشيني په وخت کښې موجود وو. د دې دپاره چې هـغـوي پـخـپـله د هغې فرق اندازه ولګوي کوم چې د دې ملـک د نن ورځې په حالاتو او تـرقۍ کښې او په وړومبني حالاتو کښې دے.

زهٔ غواړم چې د خپلو مشکلاتو يو څو وجوهات په تحرير کښې راولم. دا حسب ذيل وو :

اول پـه تخت باندې د کښيناستو په وخت ماته په حيثيت د ملک د بادشاه دا مشکل پيـش راغـلو چې زما د استوګنې کور نۀ وۀ ځکه چې په بالاحصار کښې کوم محل وۀ او زما د پـلار نيکۀ کور وۀ هغه انګريزي فوځ تباه کړو او بل يو کور هم تيار نۀ وۀ او داسې بل يو ځاے د کـرايې هـم نـۀ وۀ چې زۀ پـکښې عارضي طور وسيدلے وے. ځکه چې په افغانستان کښې هوټلونه بالکل نشته. زما په خيال کښې به داسې ډير کم مثالونه په تاريخ کښې وي بلکې نۀ به وي چې يـو بادشاه سره د اودۀ کيدو دپاره کمره هم نۀ وي په دې سبب زۀ تر هغه وخته پورې چې مـا بـل نـوے مـحـل د ځـان دپـاره نۀ وۀ جوړ کړے تر هغې به زۀ په خيمو کښې او د خپل رعيت د ختو په کورونو کښې وسيدم چې کوم ما د هغوي نه غوښتي وو.

د دې کتـاب پـه وړومبـنـي بـابونو کښې ما خپلو لوستونکو ته دا خبره کړې ده چې د ورکـوټوالي نه زۀ په پرانستې هوا کښې د وسيدو عادت وم او زما کورونه به هميش په باغونو کښې واقـع وو چـې کوم ځاے به ماته ډيره تازه هوا د خوراک دپاره مهيا وه. ما دپاره دا ډيره مشـکـلـه وه چـې زۀ په هغه ګنده بند او بې هوا کوټو کښې چې په کومو کښې دا کورونه وو استـوګـنـه اختيـار کـړم. دا کـورونـه د سـورو نـه ډک وو او هـميشه به پکښې د مږو شور او جـنګونه وو او وړومبے مقابله زما دې جنګونو سره پيښه شوه او د هغوي د شور په سبب به زۀ ټوله شپه ويښ وم.

دويـم پـه سـرکـاري خـزانـه کښې يـوه پيسـه هـم نـۀ وه چې د فوځ په تنخواه يا د بل سرکاري نوکر په تنخواه کښې ورکړې شوے وے نۀ صرف دا خبره وه بلکې کوم څيز ته چې خـزانه وائي هغه هلته بالکل موجوده نۀ وه. د ملک ماليه د کال يا د دوۀ دپاره څۀ شير علي او څـۀ يـعقوب او څۀ انګريزي فوځ پيشګي ټوله کړې وه. له دې کبله ما د ماليې بابت يوه پيسه هم نشوه ټولولے ځکه چې هغه وړومبې ټوله شوې وه.

دريـم د جنګ سامان او ګوله بارود چې په ملک کښې د امن دپاره ضروري څيزونه دي هـلته مـوجـود نـۀ وو کومې ديرش افغاني زړې توپې چې ما د انګريزي افسرانو نه اخستې وے هـغـه پـه داسـې حـالـت کـښـې وے چې کۀ ديوې به شپيلۍ وه نو ګاډے به ئې نۀ وۀ او کۀ ګـاډے بـه ئې وۀ نـو ډُره به ئې ماته وه او يا د هغوي د لرګي پايې او ګاډې په داسې حالت کښې وو چـې پـه وړومبي ځـل راښکلو به ټکړې ټکړې شو. او بيا د دې ټولو نه پس کۀ څنې توپې مکمل هم وے نو ګولۍ موجودې نۀ وے چې په هغې کښې خلاصې شوې وے. يقيناً يوه ګټه يا لـرګـي د هغې توپې نه زيات سودمند دے چې هغې سره ګولۍ نۀ وي ځکه چې يو سپاهي هم د توپې په شپيلۍ باندې خپل دشمن نشي وهلے ليکن په يو لرګي ئې وهلے شي.

څـلـورم هـرات زمـا د حکومت نه بيل شوے وۀ او د ايوب د حکومت د لاندې وۀ هغه زمـا بـرخـلاف د خـلـقـو پـه پـاڅـولـو کښې مـصروف وۀ او د جنګ تيارى ئې کولې قندهار

فیرنګیانو د سردار شیر علي چې د قندهار والي وۀ حکومت ته سپارلے وۀ او دۀ په بیله خلقو ته پښتپله ډله کښې د شاملیدلو ترغیب ورکولو. په میمنه کښې دلاور خان نومے ګورنر زما برخلاف سازشونه کول، په ټول ملک کښې دا حال وۀ چې د وړومبنو بادشاهانو لکه شجاع، شیر علي او یعقوب د کمزوري اخلاقو په سبب هر یو سردار سید او ملا خپل ځان نه یو خودمختار حاکم جوړ کړے وۀ. او د رعیت د خلقو نه ئې په زور روپۍ ټولولې. په بادشاهانو کښې نۀ دومره دلیري وه او نۀ طاقت وۀ چې دا شان غاصبانو له ئې سزا ورکړے وے. او په ملک کښې ئې امن او انتظام قائم کړے وے.

د شیر علي د دفتر مثلونه چې نن ورځې زما د افسرانو په قبضه کښې دي دا ښيي چې د قتل په سزا کښې به صرف د پنځو سوؤ روپو جرمانه په قاتل لګیده او په دې طریقه هغۀ دا ثابته کړې وه چې د سړو او د ښځو ژوندون د ګډو او د غواګانو نه زیات ارزان وۀ. د ډې نرمۍ نتیجه دا وه چې د نجراب غونډې وړه صوبه کښې چې صرف شل زره ټبرې په کښې اباده وے پنځوس زره روپۍ سالانه د دې قسم جرمانې ګورنر نه ادا شوے وے. د دې مدعا دا وه چې په یو کال کښې یو زر قتله په دې وړه صوبه کښې شوي وو.

د شیر علي د خاندان د پرې خلقو او بې علمه ملیانو او برائے نام غازیانو چې افغانان ورته په حقه تازیان وائي زما برخلاف د خلقو د پاڅولو کوشش کولو. او دا به ئې وئیل چې عبدالرحمٰن کافر دے ځکه چې هغه د فیرنګیانو دوست دے او هغوي کافر دي او په دې سبب هر یو مسلمان له پکار دي چې د هغۀ برخلاف غزا وکړي.

د انصاف کولو طریقه دا وه چې د غریب نه غریب سړي به هم خپله دعویٰ د بادشاه په مخکښې پیش کولے شوه. او صرف دومره کار به ئې کړلو چې د بادشاه زیره او پټکے به ئې ونیولو چې د هغې مطلب به دا وۀ چې ما خپل فریاد ستا د زیرې شرم ته ورروغورځولو له دې کبله هغه به د هغې په اوریدو مجبور وو. یوه ورځ زۀ حمام له روان وم چې یو سړے او د هغۀ ښځه په دۀ دۀ ما پسې د لامبلو کمرې ته رانوتل او خاوند ئې زما زیره د مخې نه ونیوله او ښځې ئې زۀ د شا نه رانښکم په دې ماته ډیر تکلیف وشو ځکه چې هغۀ زما زیره ډیره کلکه رانښکله چونکې زما په خوا کښې هیڅوک محافظ یا سنتري نۀ وۀ چې زۀ ئې د دوئ نه خلاص کړے وے له دې کبله ما هغوي ته خواست وکړو چې زما زیره پرېږدئ او ورته مې ووې چې زۀ به ستاسو فریاد د زیرې رانښکلو نه بغیر هم واورم مګر هیڅ فائده ونشوه. زۀ لا په دې خفه شوم چې ما د یورپینو دستور ولې نۀ دے کړے یعنې دا چې زیره بریت مې ولې نۀ دي کل کړي. ما حکم وکړو چې د مخکښې دپاره دې یو مضبوط ګارډ د حمام په دروازه ولګي.

یو بل رواج دا وۀ چې هر کله به د متایې پتنوسونه دربار ته راغلل نو په ځایے د دې چې وزیرانو او افسرانو په خپلې خپلې حصې د اخستو انتظار کړے وے نو هغوي به په هغې

حمله وکړه او په یو بل به راپریوتل د دې دپاره چې هر یو په زور ډیره ډیره واخلي. او اګر کۀ ما ډیر کوشش وکړو چې زۀ هغوي په دې پوهه کړم چې زما په موجودګۍ کښې د ځنګلي ځناورو پشان ستاسو په دې طریقه خوئ کول هم ستاسو سپکاوے دے او هم ستاسو د بادشاه. لیکن هغوي زما په خبرو هیڅ توجه ونۀ کړه یو ځلې د اختر په ورځ د هغوي په دې متهایانو باندې پخپله کښې د جنګ کولو په سبب دومره په غصه شوم چې ما د ګارډ سپاهیانو ته حکم وکړو چې دومره ئ ووهئ ځومره چې ستاسو نه کیدے شي او نیم خوشحاله او نیم خفه شوم چې ما د سپاهیانو د ګوزارونو د لاسه د هغوي سرونه مات په وینو رنګ ولیدل لیکن د دې سلوک نتیجه دا وه چې د هغوي د دې بې وقوفۍ او نالائقۍ د خوئ خاتمه وشوه.

اوس به زۀ تاسو ته د خپلو وزیرانو او مشیرانو د عقل یوه نمونه پیش کړم. یو ځلې چې ډوډۍ او اوړۀ په بازار کښې ګران شو او د قات ویره پیدا شوه نو زما وزیرانو چې چا سره ما په دغه مصلحت وکړو ماله دا صلاح راکړه چې د غلې او د اوړو د خرخونکو غوږونه د خپل خپل دکانونو دروازو سره په میخونو ټک وهه د دې دپاره چې هغوي مجبور شي او غله او اوړۀ ارزان کړي. زۀ په دې قیمتي مشوره باندې بې خندیدو پاتې نشوم. او د هغې ورځې نه تر نن ورځې پورې ما بیا د خپلو مشیرانو نه صلاح وانۀ خسته.

د تخت مدعیان دومره ډیر وو چې د هغوي د نومونو فهرست جوړول ناممکن وو زما د کور خلق او بچي په روس کښې پاتې شوي وو زۀ په دې هم مجبور شوے وم چې ما خپل یو څو اعتباریان نوکران د خپل ځان نه د دې دپاره لیږلي وو چې هغوي د ملک د انتظام نګراني وکړي له دې کبله زۀ نا امیدو او مشکلاتو بالکل راګیر کړے وم او نۀ زما څوک مشیر کار وۀ او نۀ زما څوک دوست. لیکن کوم سړے چې یوائې په خدائے توکل کوي نو د هغۀ دپاره د مشکلاتو او د غم په وخت کښې هم د خدائے پاک ملګرتیا کافي ده.

په ګاونډ کښې هم د غیر قومونو حکومتونه زما دپاره د ډیر فکر باعث وو ځکه چې په هغوي کښې به هر یو په دې خفه کیدلو چې تا د بل طرفداري زیاته وکړه.

تاریخ دانان او تجربه کار سیاست دانان په دې پوهیږي چې هر کله یو حکومت دا شان د تباهۍ په حالت کښې پریوځې او د وړو وړو خانانو په منځکښې تقسیم شي نو بیا د هغې حکومت په یو مضبوط او منظم شکل کښې په راوستلو ډیر عمر لګي. د مثال دپاره وګورئ د هندوستان سلطنت چې شهنشاهان مغل د کمزورو په وجه په وړو وړو حکومتونو کښې تقسیم شوي وو نو وګورئ چې څومره وخت په هغې باندې د انګریزانو ولګیدو. څومره مشکلات هغوي ته پیښ شول او څومره بغاوتونه د هغوي برخلاف وشول. باوجود ددې چې انګریزي سیاستدانان د ډیر علم، تجربې او د عجیب و غریب عقل خاوندان دي. هم په دې شان د افغانستان د سلطنت کمزوري هم ډیره زیاته وه تر دې حده پورې چې هر کله

بـه بادشاه د خپل دارالحکومت نه یو څو میله بهر ته لاړو نو چې به واپس راتلو نو یو بل سړے به بادشاه شوے وۀ او بیا به د هغۀ د تیښتې نه بله لار نۀ وه. د دې نه پس چې شیر علي دا ولیدل چې زۀ د خپل رعیت د خانانو برخلاف په خپله نشم جنګیدے نو هغۀ یوه بله طریقه جاري کړه چې د هغۀ په خیال کښې د ډیرې عقلمندۍ لار وه. او دا طریقه دا وه چې هغۀ خپل خانان او افسران د یو بل مقابلې ته کښینول او هغوي له به ئ د جنګ و جدل ډاډګیرنه ورکوله او هغۀ یوه قاعده جوړه کړه چې کۀ چرې څوک خپل دشمن قتلول غواړي نو هغه دې صرف درې سوه روپۍ في نفر په سرکاري خزانه کښې داخلې کړي او څومره سړې چې ئ زړۀ غواړې قتل دې کړي. په دې تجویز د بادشاه دا خیال وۀ چې زۀ به دوه قسمه په فائده کښې یم یو خو دا چې زۀ بـه د باغیانو خانانو نه بغیر د تکلیف وچتولو نه خلاص شم. ځکه چې هغوي به یو تربله قتل شي. دویم دا چې د هر یو سړي په سر به چې هغه به په دې طریقه قتل شو هغۀ درې سوه روپۍ اخستې. د سعدي رحمة الله علیه دا مشهور نظم حسب ذیل دے :

"هر یو قوم چې د هغۀ نه خدائے خوشحاله وي هغۀ له یو نیک حاکم ورکړي کۀ چرې خدائے غواړي چې یو ملک وران کړي نو هغه د یو ظالم په پنجه کښې ورکړي."

د خدائے شکر دے چې اوس افغانستان هم دغه شان ملک دے ځکه چې په ټول کال کښې د افغانستان په ټول حکومت کښې صرف پنځۀ قتله شوي دي او په دې کښې هغۀ د نورو ډیرو مهذبو ملکونو نه نمبر وړے دے. خلقو د ورانۍ دا شان بد عادتونه اختیار کړي وو چې هر کله د سابق امیر شیر علي مشرانو زامنو یعقوب او ایوب د خپل پلار برخلاف په هرات کښې بغاوت وکړو نو سړے دې په دې غور وکړي چې کۀ د بادشاه زامن دا شان ښه او نیکه نمونه قائمه کړي نو د رعیت خلق به کوم کوم قسم عبرتونه د دې نه وانخلي.

"هر کله چې زۀ د خپلو د عمل نه په غم کښې پروت یمه نو زۀ به د پردو خلقو د عمل نه څۀ طمع وکړم". (سعدي) بادشاه او د هغۀ ټول لوے لوے افسران په خپل ذاتي عیش و عشرت کښې مبتلا وو مګر د دې په مقابله کښې د رعیت خلق په تکلیفونو کښې ډوب پراتۀ وو ځکه چې دې ظالمانو افسرانو په هغوي باندې لوے لوے ټیکسونه لګولي وو. جماتونو کښې به کوټه سپي ګرځیدل، او چونکې خلقو به په هغې کښې مونځونه نۀ کول نو سپو به په هغې کښې ځان له کورونه جوړ کړي وو. جمعه چې زمونږه زبرګه ورځ ده او پکار دي چې په هغه ورځ سړے په عبادت کښې لګیا وي نو په هغه ورځ به خلقو جوارۍ، ورانې لوبې او ټوقې کولے او یو بل به ئ په ګټو ویشتو. د کابل په خوا کښې جبه نومے یو ځائے کښې چې د ښار نه بهر یو قبرستان دے ډیر خلق به یو بل سره په جنګ کښې زخمیان شول. د قرآن شریف دا آیت د دې زمانې د خلقو د تباه شوي حالت بالکل مناسب حال دے. " الله تعالیٰ یو قوم هم نۀ تباه کوي تر څو پورې چې هغه پخپله خپل ځان د بد عملونو په وجه تباه نۀ کړي."

الحمد لله چې هم هغه ملک چې په دا شان خراب حال وۀ لکه چې څرنګ مو بيان کړے دے، دا شان عجيب و غريب ترقي وکړه چې په هغې کښې چارچاپيره امن او فراخ حالي ده او د هغۀ دوستان هغه په دې حال کښې په ليدو خوشحاله دي او دا وائي چې دا خلق اوس يو مضبوط قوم شو او يوه ورځ به زمونږ دپاره باعث امداد شي. ليکن دشمنان هغۀ ته د يو مضبوط او خطرناک دشمن په نظر ګوري. خلق اوس دا شان پر امن او زما د حکم فرمان بردار دي چې هغوي هر وخت دې خبرې ته تيار دي چې هغوي په ډيرې خوشحالي او په مينه زما د احکامو او د هداياتو تعميل وکړې. زۀ په دې ډير خوشحاله يم هغوي دنيا ته دا ثابته کړه چې د حکومت مفاد او د هغوي مفاد دواړه يو څيز دے هغوي په خپل خرڅ په لويو لويو ټولو کښې د هزارو او د کافرو برخلاف د جنګ دپاره وتل او چا چې د حکومت برخلاف بغاوت کړے وۀ هغوي ئې خپل دشمنان وګڼل د حکومت د بهبودۍ کومه مينه او کوم قدر چې د هغوي په زړۀ کښې موجود دے د هغې مزيد ثبوت هغوي په 1895ء کښې ورکړو هر کله چې بغير زما د غوښتو نه سرکاري ملازمانو، سوداګرانو، زميدارانو او زما درعيت د هرې طبقې خلقو د خپلې سالانه آمدنی لسمه برخه په سرکاري خزانه کښې داخله کړه او هغوي ماته سوال وکړو چې په دې روپو سامان جنګ او ګوله بارود واخله چې زمونږ ملک د پردي حکومت د حملو نه محفوظ شي. هم هغه قوم چې زما د حکومت په ابتدا کښې زما برخلاف په بغاوت او جنګ و جدل کښې مصروف وو لکه چې څنګه به زۀ مخکښې په تفصيل سره بيان کړم، اوس ډير پر امن فرمانبردار او پابند قانون او مهذب قوم شو. اوس هغوي د هرقسم صنعت و حرفت په زده کولو کښې مصروف دي او عام طور د خپل ملک د ترقي او د خپلې خوشحالي دپاره سامان جوړوي. د خداے پاک په فضل سره د خلقو په طرز زندګۍ او عمل کښې د نورې زياتي ترقۍ او د فراخ حالۍ آثار هم په نظر راځي. زما په تخت باندې د کښيناستو په وخت کښې د خلقو چې څۀ حال وۀ د هغې بالتفصيل تشريح کولو نه پس به زۀ د هغې واقعاتو تفصيل بيان کړم چې کوم د هغې نه پس پيښ شول.

ما په ډير فکر سره د رسول الله ﷺ په هغې نصيحت عمل وکړو چې کوم هغۀ يو اصحابي ته کړے وۀ. رسول الله ﷺ هغه اصحابي ته په زوره اواز وکړو چې "په خداے پاک توکل وکړه خو د خپل اوښ څوکۍ کوه."(۱)

---

(۱) روايت دے چې يو اصحابي رسول الله ﷺ له جومات ته راغے او خپل اوښ ئې د جومات نه بهر پريښودو رسول الله ﷺ د هغۀ نه تپوس وکړو چې اوښ دې چاته په حواله کړو هغه سړي په جواب کښې ووې چې ما په خداے توکل وکړو ليکن رسول الله ﷺ ورته ووې چې په خداے توکل کوه خو دې سره سم د خپل اوښ څوکي هم کوه. د رسول الله ﷺ د دې مسئلې متعلق دا عقيده وه چې خلق دې په هر يو کار کښې خپل پوره پوره کوشش کوي او بيا نتيجه دې د خداے په لاس کښې پريږدي. او هيڅوک دې دا طمع نۀ کوي چې کرلے خو مې اوربشې دي او د هغې په ځاے به غنم لو کړم.

دوه واقعې دا شان پېښې شوې چې د هغې نه ماته ډېره تسلي شوې وه ځکه چې ماته د هغې نه دا امید پیدا شو چې زۀ به د بادشاهۍ په کار کښې ناکامیاب کیږم نه او په اخر کښې به ضرور کامیابیږم.

زۀ چې لا د روس په ملک کښې وم او افغانستان ته نۀ وم راروان شوے چې ما یوه شپه خوب ولیدو چې زۀ دوؤ فرشتو د مټو نه نیولے یم او د یو بادشاه په مخکښې ئې پیش کړم چې هغه په یوه وړه کمره کښې ناست وۀ هغه د شکل نه ډیر ملائم او شریف وۀ او مخ ئې بیضوي شان وۀ، ږیره ئې لنډه وه او وړدې ښکلې ورو ځې او باڼۀ ئې لرل. هغۀ د شین رنګ یو لوے او فراخ لباس اغوستے وۀ او یو سپین پټکے ئې په سر وۀ . د هغۀ ټول شکل د کمال خوبصورتۍ او د شرافت طبع وۀ. د هغۀ ښي لاس ته یو بل دنګ او نرے شان سړے ناست وۀ د هغۀ ږیره وړده او سپینه وه او شکل ئې د محبت د خیالاتو نه ډک وۀ د هغۀ په خوا کښې یو بل سړے وۀ چې دومره دنګ نۀ وۀ بلکې یو میانه قد سړے وۀ. او د هغې زوړ شریف زاده په نسبت چې ښي لاس ته ناست وۀ زیات د سپین څرمنې خاوند وۀ او یو قلم دان د هغۀ په مخکښې پروت وۀ هغه قدرې قیمتي جامې اغوستې وے او ورسره د کاغذونو په یو څو پاڼو باندې د عربی خط لیکلے پروت وۀ د بادشاه ګس طرف ته یو بل سړے ناست وۀ چې د سنهري رنګ ږیره ئې وه او غټې ورو ځې او غټ بریت ئې لرل. پوزه ئې وړده او نیغه وه او نمونه ئې د ډیر مهربان او فیاض سړي وه. هغه په تیر شوو دریواړو کښې چې ما تشریح کړې ده د یو زیرک په نسبت یو سیاستدان سره زیات مشابه وۀ. او په ټولو کښې زیات دنګ وۀ. د هغۀ خوا ته یو وړ چابک وۀ د هغۀ په خوا کښې یو بل سړے ناست وۀ چې نهایت خوبصورت وۀ او په نسبت د دې نورو په شکل و شباهت کښې د بادشاه سره زیات مشابه وۀ. هغۀ د زړې زمانې د فوځې افسرانو په شان جامه اغوستې وه او یوه توره ورسره وه د مخ نه هغه ډیر زیرک معلومیدو. او د هغۀ عام کرۀ وړۀ د یو جنګجو وو. هغه په هغه کسانو کښې چې په کمره کښې وو د ټولو نه پست قد وۀ . څۀ وخت چې زۀ د دې بادشاه او د هغۀ د څلورو یارانو په مخکښې پیش کیدم نو ما ولیدل چې یوه کړکی چې دې کمرې ته دننه په کښې لار تلې وه ناساپې خلاصه شوه او یو بل سړے د هغوي مخکښې پیش شو بادشاه هغه سړې ته چې کوم دغه ساعت د هغۀ په مخکښې پیش شوے وۀ د سترګو په خاموشه ژبه کښې هغۀ ته دا شان مخاطب شو چې ما د بادشاه الفاظ وانۀ وریدل خو صرف د هغه سړي جواب مې واوریدو او هغه دا وۀ چې "زۀ به د نورو مذهبونو ګرجې رواني کړم او هغې نه به جوماتونه جوړ کړم کۀ چرې زۀ بادشاه شوم." بادشاه په دې جواب څۀ ناراض غوندې شو او کومو فرشتو چې هغه رادننه کړے وۀ هغوي ته ئې حکم وکړو چې دې بوځئ چنانچه هغوي فوراً د دې حکم تعمیل وکړو بیا زما نه هم د دې سوال تپوس وشو او ما دا جواب ورکړو چې "زۀ به انصاف کوم

بتـان به ماتوم او د هغې په ځاے به کلمه رډم" هر کله چې ما دا الفاظ ووئيل نو د بادشاه څلورو يـارانـو د مـحبـت نـه ډکـه طريقه باندې وکتل د دې اظهار محبت نه دا شان معلوميده لکه چې هـغوي زما د بادشاه کيدلو منظوري ورکړه هم دغه وخت ماته الهام وشو چې دا بادشاه محمد رسـول الله ﷺ دے او دا دوه سـړي د هغهٔ ښي لاس ته حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت عـلي رضي الله عنه دي. په دې زهٔ راويښ شوم او ډير خوشحاله شوم چې زهٔ رسول الله ﷺ او د هـغـهٔ څلورو يارانو چې د چا په لاس کښې د اسلام د بادشاهانو د تقررئ اختيار دے، زهٔ امير مقرر کړم.

بـلـه واقـعـه دا ده هر کله چې ما يوه ورځ د خپل وطن د خلقو د مشکلاتو قصې ته غوږ نيـولے وهٔ نـو زهٔ دومره خفه شوم چې زهٔ د خواجه احرار روضې مبارکې له لاړم چې زهٔ د هغهٔ د ارواح نـه مـدد وغـوارم مـا د خپـلې زندګئ په نا اميدو او په مشکلاتو باندې ډير وژړل او چې ستـړے شـوم نـو پـه زمـکه باندې اودهٔ شوم هم په دغه شپه ما په خوب کښې وليدل چې د دې ولـي روح زما په مخکښې حضور شو او ماته ئ ووئيل چې تهٔ به د مخکښې دپاره امير ئ زما د قبر نه يوه جنډه واخله او مخکښې ئ ځان ته ښخه کړه نو تهٔ به هميش فتح مند ئ. ماسره اوس هم هغه جنډه شته او زما فوځ هيچرې هم شکست نهٔ دے خوړلے.

## يولسم باب

امـيـر عبـدالرحمٰن خان په دې اخري باب کښې د هغه جنګونو حال په تفصيل سره ليکلے دے کـوم چې د دهٔ د تخت نشينئ نه پس دهٔ ته پيش شوي وو او په دې ټولو جنګونو کښې دې فتحياب شـوے وهٔ، پـه هـغـو کـښـې څو مشهور جنګونه دا دي : د کونړ د سيد محمود باچا بغاوت مقابله په جـنـګ کـښـې شـکـسـت خـوړل او هـنـدوسـتـان ته تښتيدل، د شير خان د بادشاهئ دعوئ کول او شکست خوړل، د ميمنې د دلاور خان د مير محمد يوسف علي د شنوارو او د غلجو، د محسودو د هزارو، منګلو ، زرمت او د نورو قبيلو بغاوتونه، جنګونه او ماتې خوړل، د روسيانو په افغاني څوکئ پـنـجـده حـمـلـه او قـبـضـه، ايوب خان سره اخري مقابله او د امير صاحب کاميابي، اخري جنګ د کـافـرسـتـان دے چې يـوه زوروره حـمـلـه پرې شوې وه او فتح شوے دے. د کتاب په اخر کښې د شړونکو ذکر دے.

هـم پـه هغه کال چې ما محمد ايوب له شکست ورکړو نو زهٔ مجبور شوم چې د يو بل سـردار بـرخـلاف جـنـګ وکـړم، دا جـنـګ مـا د کـونـړ د سيـد محمود برخلاف وکړو. سيد مـحـمـود د مشهور و معروف وزير اکبر زوم وهٔ. او په دې وجه هغه د شير علي د پرې ملګرے وهٔ څهٔ وخت چې زهٔ د کابل په تخت کښيناستم نو هغهٔ خپل ځان د کونړ بادشاه کړو ځکه چې دا د هـغـهٔ ريـاسـت وهٔ. هغهٔ په ملّايي نومے يوه غونډئ باندې ځان له استوګنه اختيار کړه چې د

کونړ نه تقریباً په شپږ میله فاصله باندې پرته وه. او هر کله چې زهٔ قندهار ته راروان شوم نو هغهٔ شلور پنځهٔ سوه سورو سره چې هغه د کونړ باغي رعایا کښې ځان له پیدا کړي وو، زما په علاقه حمله وکړه. هغه دومره بیوقوف وهٔ دا خیال ئې کولو چې شلور سوؤ یا پنځو سوؤ سورو سره چې هغوي سره هم زرې توپکې وې، بـه زهٔ ځان بادشاه کړم. زما افسرانو سردار عبدالرسول او میر شنا گل د هغهٔ مقابلې ته راووتل. لیکن هغه جنگ کولو ته مائل نشو. هغه بیا هم هغه غونډی ته واپس شو او هلته ئې د کونړ جاهلو مذهبي مجنونانو سره سازشونه جاري وساتل. هرکله چې په دې طریقه هغهٔ خپل ځان له ډیر مریدان پیدا کړل نو شپږ میاشتې پس هغه بیا زما برخلاف راپاڅیدو. دغه وخت بیا زهٔ د خپلې فتحې نه پس د قندهار نه راواپس شوے وم. نو ما غلام حیدر خان چرخي خپل کمانډنټ چیف او عبدالغفور د سید محمود برخلاف د جنگ کولو دپاره مقرر کړل. زما کمانډنټ ان چیف په جنگ کښې د اس نه پریوتو او گیټې ئې ماته شوه. لیکن زما بهادر سپاهیانو جنگ بدستور جاري وساتلو. تر دې پورې چې هغوي سید محمود هندوستان ته په تیښته مجبور کړو او قطعي طور ئې هغهٔ له شکست ورکړو. او کومو خلقو چې هغوي له پناه ورکړې وه د هغوي کورونه ئې وسوزول.

هم په دغه کال یعني 1881ء کښې شیر خان د کلمان د احمد زوي چې په دروغه ئې ځان ته امیر شیر علي ووئیل او ډیرو خلقو له ئې دغه شان دوکه ورکړه او خپل ځان ئې امیر شیر علي په خلقو تسلیم کړو. او ورته ئې ووې چې ما سره په بغاوت کښې د عبدالرحمٰن خان خلاف شامل شئ. لیکن لا هغهٔ څهٔ ډیر اهم مشکلات ماته نهٔ وو پیدا کړي چې هغه گرفتار شو او په قید کښې مړ شو.

په کال 1882ء کښې حسب ذیل واړهٔ واړهٔ جنگونه وشو:

د میمنې والي دلاور خان چې ځان ئې د ایوب او د شیر علي د کور د پرې سړے گڼلو. هرکله چې هغه پوهه شو چې ایوب له عبدالرحمٰن شکست ورکړو نو هغهٔ دا خیال وکړو چې زهٔ اوس خپله خودمختاري برقرار نشم ساتلے. ځکه چې د میمنې صوبه زما د حکومت په حدودو کښې وه. نو هغهٔ په هره ممکنه طریقه دا کوشش وکړو چې هغه زما د حکومت نه جدا پاتې شي. د هغهٔ د دې خواهش مطابق هغهٔ وړومبے روسي افسرانو ته خط ولیکلو. لیکن چونکې د هغوي نه هغهٔ ته څهٔ امداد رانغے نو هغهٔ سر رابرټ سنډیمن د بلوچستان گورنر جنرل ته خط ولیکلو چې زهٔ خپل ځان د حکومت برطانیه یو نوکر گڼم په دې وجه ماله امداد راکړئ. د دې په جواب کښې هغهٔ ته ووئیلے شو چې تهٔ د عبدالرحمٰن اطاعت قبول کړه. ځکه چې نهٔ حکومت برطانیه او نهٔ حکومت روس د خپلو خپلو عهدنامو مطابق د افغانستان په اندروني پالیسۍ او معاملاتو کښې داخل ورکولے شي په دې وجه هغهٔ د خپلې بې وقوفۍ د سزا خوړلو دپاره یواځې پاتې شو. ما محمد اسحاق خپل د ترکستان

ګورنر ته هدايات واستول چې تهٔ د دلاور برخلاف فوځ واستوه چنانچه هغهٔ هم دغه شان وکړل ليکن هغهٔ ماته رپورټ راکړو چې والي ډير مضبوط دے او شکست ورکول ورله ډير مشکل دي. زما خيال دے چې اسحاق ما سره دوکه کوله او دغه ټول وخت چې ما هغه خپل يو وفادار افسر او صادق خير خواه ګڼلو هغه غدار وهٔ. چنانچه د هغهٔ نمک حرامي وروستو ثابته شوه. هم په دغه کال ما د شګنان او د روشن مير يوسف علي برخلاف فوځونه واستول او د هغې وجوهات حسب ذيل وو :

اګر چې دې مير د خپل ځان متعلق د خودمختار حاکم اعلان کړے وهٔ ولې هغهٔ په دې صبر ونکړو هغهٔ دا خيال کولو چې زهٔ به غالباً د هغهٔ ملک ضرور يو ورځ په خپل حکومت کښې شامل کړم د دې نه د بچ کيدو دپاره هغهٔ وړومبے د قوقند حاکم سره خط و کتابت شروع کړو او بيا ئ وروستو روسي حکومت سره هغهٔ ليبرډريګل روسي سياح شګنان ته مدعو کړو او حسب ذيل شکايات ئ د هغهٔ په مخکښې کښېښودل.

امير افغانستان زما ملک په خپل حکومت کښې شاملول غواړي او زهٔ خپل ځان د روس د حفاظت لاندې ګڼم دويم دا چې عبدالرحمٰن د افغانستان په حدود کښې د هغه شورشونو نه ستړے شوے دے چې کوم ما هغهٔ ته برپا کړي دي. له دې کبله عبدالرحمٰن د يوې مناسبې موقعې په انتظار ناست دے چې کهٔ زر وي او کهٔ پس چې دهٔ له سزا ورکړم په دې موقع زما مخبرانو او جاسوسانو چې بيل بيل ښار کښې زما د طرف نه مقرر وو يعنې په قوقند، روشن، شګنان او بخارا کښې. هغوي ټولو ماله د هغهٔ د ارادو متعلق خبرونه راکړل او ماته ئ ووې چې دې سړي روسي حکومت ته ځان قبول کړے دے. هغوي ماته دا خبر هم راکړو چې هغهٔ روسي حکومت له خپل ملک ته د راتلو دعوت ورکړے دے. دې خبرې زما فکر ډير زيات کړو ځکه چې کهٔ يو ځل روسيان روشن او شګنان قبضه کړے وهٔ نو ما بيا هغوي نشو ايستے. او زما حکومت به غير محفوظ شوے وهٔ په دې وجه ما جنرل قتال خان او سردار عبدالله خان ته چې دا وخت د قطغن ګورنر وهٔ حکم وکړو چې په مير يوسف علي چپاؤ وکړئ. د يوې ورکوتې شان جګړې نه پس مير په جګړه کښې قيدي شو او سره د خپل فوځ د خلقو کابل ته راوستے شو. ما بيا هلته د قندهار ګلعزار خان ګورنر مقرر کړو او هر کله چې هغهٔ روسي افسر ايم آئي وانوف چې مير پخپله هغهٔ له سره د فوځونو خپل ملک ته د راتلو اجازت ورکړے وهٔ، راورسيدو ـ په دغه ملک باندې زما ګورنر د وړومبي نه قبضه کړې وه روسيانو په دې ملک باندې څو څو کاله خپله دعوې چلوله او تر هغې پورې لا فيصله شوې نهٔ وه تر څو چې د سر مارټيمر ډيورنډ مشن په 1893ء کښې کابل ته نهٔ وهٔ راغلے.

هر کله چې ما په دې صوبو قبضه وکړه نو ما د هغې ټولو مظالمو خاتمه وکړه چې کوم به مير په خپل رعايا باندې کول او د غلامۍ ناقابل برداشت او ظالمانه رواج مې هم بند

کړو. زۀ به د دې صوبو د میرانو د بدو عادتونو او بداخلاقو ډېر ذکر نۀ کوم ځکه چې ما د خپل کتاب په ابتدا کښې د دې متعلق ډېر څۀ وئیلي دي.

په 1883ء کښې د شنوارو قبائل چې د جلال اباد سهیل مشرق ته د پیښور د لارې دواړه طرفته پراتۀ دي او د کابل د بادشاهانو دپاره همیش باعث تکلیف وو اوس بالکل ناقابل برداشت شول. د ډېرو کلونو نه د هغوي دا عادت وۀ چې قافلې به ئې لوټ کړې مسافران به ئې قتلول، او د کلو د خلقو مالونه او رمې به ئې تالا کولے. د شیر علي په ټوله زمانه حکومت کښې پیښور ته د تلو لار د دې خلقو د لوټمار په سبب سخته خطرناکه وه. حقیقت دا وۀ چې په ټوله لار عین تر کابله هیڅا هم د قتل او د تالا کیدو د ویرې سفر نۀ کولو له دې کبله ما مناسب وګڼل چې د دې ټولو مظالمو او خطرو خاتمه وکړم. ځکه چې پا دې سبب هغه ټولو کسانو ته خوف و خطره وه چې د چا دې قبائلو سره ګزاره وه. د 1883ء په ژمي کښې ما خپل زوے حبیب الله خان په کابل کښې په حیثیت د ګورنر پرېښودو او پخپله جلال آباد ته لاړم چې په چارچاپیره ملک کښې امن او ښۀ انتظام قائم کړم چنانچه ما د شنوارو خانان او ملیان مدعو کړل چې ما سره وړینئ او بیا ما هغوي سره په ډېرې نرمۍ او د دوستۍ په لار دا رنګ خبرې وکړې " دا د خدائے او د هغۀ د رسول ﷺ د احکامو نه خلاف خبره ده چې تاسو نور مسلمانان شوکوئ او تالا کوئ" اګر چې ما خپل ډېر وس وکړو چې هغوي دې خبرې ته مائل کړم چې هغوي دا خپل بد عادتونه پرېږدي لیکن چونکې هغوي د ډېرو کلونو نه خلق شوکولي او تالا کړي وو له دې کبله هغوي زما په نصیحت غوږ کښېنښودو. دلته ما له دا ذکر هم کول پکار دي چې هرکله د امیر شیر علي په زمانه کښې شهمد نومے د جلال اباد ګورنر وۀ نو هر چا چې به هغۀ ته د شنوارو د شوکو شکایت وکړو نو هغۀ به هغوي له سزا ورکړه او دلیل به ئې دا پیش کړو چې دا فریادي د شنوارو او زما په منځکښې جګړه پیدا کول غواړي.

هرکله چې زۀ د هغوي د ضد نه او زما په نصیحت باندې د غوږ نۀ ایښودو نه ستړے شوم نو ما هغوي له د سزا ورکولو دپاره تیارۍ شروع کړې په دغه ورځو کښې نور محمد د سردار ولي محمد زوے د سادو او د دادو نومے چې د سلا خیلو د قبیلې دوه مشهور ډاکوان وو شنوارو سره یو ځاے شو. او تقریباً پنځلس زره د جنګ سړي ئې زما د فوځ مقابلې ته تیار کړل ما جنرل غلام حیدر چې اوس د ترکستان کمانډنټ چیف دے سره د پیادوؤ د دریو پلټنو د رسالې د یوې رجمټې او د دوه توپخانو د هغوي برخلاف د جنګ کولو دپاره مقرر کړو. زما د رعیت هغې خلقو چې د پیښور د لارې خواوشا وسیدل ما ته سوال وکړو چې مونږ ته اجازت راکړه چې مونږ د دې باغیانو برخلاف جنګ وکړو ځکه چې مونږ د هغوي د شوکو نه تنګ راغلي یو لیکن ما هغوي ته انکار وکړو او ورته مې ووې چې دا زما فرض دي

چې زهٔ هغې کسانو له سزا ورکړم چې څوک زما د رعيت د خلقو په امن او په سلامتۍ کښې مداخلت کوي. زما او د دې شنوارو ترمنځه په څلورو مختلفو مقاماتو کښې څلور مختلف جنګونه وشو. يعنې په درهٔ حصارک، اچين، منګل او مندو خيل. په دې هر يو جنګ کښې باغيانو شکست وخوړو او ډير مقتولين او مجروحين ترينه په ميدان کښې پاتې شول. د دې نه پس د باغيانو باقي قبائلو زما اطاعت قبول کړو. د مندو خيلو قبيله څهٔ په جنګ کښې مړه شوه او څهٔ تيراه ته وتښتيده.

ما حکم وکړو چې هغې ټولو خلقو سرونه دې چې څوک په دې جنګ کښې د باغيانو نه قتل شوي وو د دوؤ لويو منارو په شکل کښې ډيرے کړے شي يو په جلال اباد کښې او بل د شهمد د وسيدو په کور کښې ځکه چې هغهٔ هغوي له د هغوي په بدو کارونو کښې ډاډګيرنه ورکړې وه. دا ټول کارونه ما د دې دپاره وکړل چې خلق هر کله د باغيانو دې کله منارو ته وګوري نو چې په دې پوهه شي چې دا سزا د هغو خلقو ده چې څوک مسافر قتلوي. زهٔ به د پښتو د نظم نه يوه دوه شعرونه دلته درج کړم چې په هغې کښې د شنوارو خلقو د اخلاقو تشريح ده : " کهٔ تهٔ سلګونه کاله په مهربانۍ سره دوستي جوړول غواړے ولې مارانو او لړمانانو او شنوارو سره دوستي جوړول ناممکن دي."

هم د دې 1883ء کال په اخر کښې د منګل او زرمت قبائلو زما برخلاف بغاوت وکړو. د دې بغاوت واقعه د يو څو وجوهاتو په وجه شوې وه چې د هغې ذکر په يو بل مقام کښې شوے دے. او هم دغه بغاوت د نورو ټولو خانه جنګو اصلي بنياد وهٔ. د دې نه علاوه بعضې نور فراريان هم د دې خلقو بغاوت ته د آماده کولو باعث وو. د فوځ يوه دسته د جنرل سيف الدين د کمان لاندې د دې بغاوت د فرو کولو دپاره د کابل نه واستولې شوه. دا جرنيل د شير علي د هغې بيوقوفو او سستو جرنيلانو نه وهٔ چې د هغوي تول عمر دا عادت پاتې شوے وهٔ چې تنخواه به ئې اخسته او کار به ئې هيڅ نهٔ کولو. هم د دې خوئ مطابق هغهٔ بيا عمل وکړو او د باغيانو برخلاف ئې جنګ ونهٔ کړو او په دې سبب هغه د 1884ء د اپريل په مياشت کښې ګرفتار کابل ته راوستے شو او يو بل فوځ د جرنيل قتال خان (چې د مشهور او معروف کمانډنټ چيف غلام حيدر خان ورارهٔ وهٔ او په 1898ء کښې وفات شوے دے) د کمان لاندې او د يحيیٰ چې يو ملا وهٔ د کمان لاندې د هغهٔ په ځاے واستولے شو د معمولي جګړې نه پس دې خلقو شکست بيامونده او د اطاعت قبلولو نه پس ئې د هميش دپاره پرامن زندګي اختيار کړه.

په 1884ء کښې دا ضروري وګڼلے شوه چې د ميمنې والي دلاور خان دې هم په هوش کړې شي ځکه چې هغهٔ خپل ځان خودمختاره حاکم کړے وهٔ او له دې کبله محمد اسحاق د هغهٔ برخلاف څهٔ فوځ استولے وهٔ ليکن څهٔ نتيجه ئې نهٔ وه راوتے. دا ځل ما قصد

وکړو چې هغهٔ له د بیل پاتې کیدو نوره موقع بالکل ور نهٔ کړم په دې سبب ما هدایات جاري کړل چې دوه بیل بیل فوځونه دې په میمنه پیش قدمي وکړي. یو فوځ د هرات د طرف نه د بریګیډیر زبردست خان د کمان لاندې چې په هغې کښې د هرات د پیادؤ یو پلټن سره د دوؤ سوؤ د رسالې د سورو او شپږو توپو واستولے شو. جمشیدي سردار چې د هغهٔ نوم یالون روشن خان وهٔ هم د دې بریګیډیر په ملګرتیا کښې شپږو سوؤ د ملیشیا سپاهیانو سره لاړ. دا فوځ د دې بریګیډیر د حکم مطابق په لسم اپریل باندې د هرات نه میمنې طرف ته روان شو. دې سره سم ما محمد اسحاق ته هدایات جاري کړل چې تهٔ د بلخ نه پنځهٔ زره جنګي سړو سره روان شوه. د میمنې قلا ډیره مضبوطه وه لیکن د یو څو ورځو د محاصرې او د یوې معمولي جګړې نه پس باغیانو زما اطاعت قبول کړو. دلاور د خپلو بدعملو په وجه ګرفتار کړے شو او کابل ته راوستے شو. میر حسن خان چې د دلاور په لاس کښې قیدي وهٔ هغه د جیلخانې نه رها کړے شو او د دلاور په ځاے د میمنې ګورنر مقرر شو. هم په دغه کال ما دا ضروري وګڼله چې زهٔ د خپل حکومت د سرحداتو پوله بیروني حکومتونو سره کیږدم. ځکه چې اوس ما خپل ځان د کابل او د ټول افغانستان د حکومت سره د هغې د دریو ډیرو اهمو صوبو چې کومې زما نه جدا کړے شوې وے یعنې هرات چې د ایوب د لاندې وه او قندهار چې د شیر علي د لاندې وه او میمنه چې د دلاور د لاندې وه قریباً قریباً مالک کړے وهٔ. زهٔ په موجوده باب کښې د پوله بندۍ په سوال باندې غور کول نهٔ غواړم ځکه چې زهٔ آئنده خاص باب هغې ته ورکونکے یم. زهٔ په دې سلسله کښې صرف یوې معاملې ته اشاره کول غواړم ځکه چې د هغې په وجه یو جنګ پیښ شوے وهٔ چې د هغې د تفصیل تشریح به مخکښې راشي.

د پوله بندۍ یو کمیشن یو طرف ته د حکومت برطانیه او د افغانستان د جانب نه او بل طرف ته د روسي حکومت د جانب نه افغانستان او د روس تر منځه د سرحداتو د پولې ایښودو دپاره مقرر شو. د انګریزي مشن مشر سر پیټر لمسډن وه.

یو څو دا خبره وه چې روسي حکومت په دې خبره څهٔ ډیر خوشحاله نهٔ وهٔ چې زما تعلقات انګریزانو سره ولې دا شان د دوستۍ دي او روسیانو ته ما ولې شا کړې ده. زهٔ د دې خبرې منلو ته تیار یم چې مانه هیچرې هم هغه مهرباني نهٔ ده هیره شوے چې کومه روسیانو ماته د هغوي په ملک کښې د خپل قیام په دوران کښې ښودلے وه. لیکن سره د هغې ماله خامخا د انګریزانو سره په دوؤ وجوهاتو دوستانه تعلقات ساتل پکار وو (۱) ځکه چې ما هغوي سره عهدنامه کړې وه او (۲) ځکه چې په دې کښې ماته زیاته فائده وه.

بله خبره دا وه چې روسیان په دې خبره خفه وو چې په حکومت افغانستان کښې دومره جرأت ولې پیدا شو چې هغوي روسیانو سره پوله بندي وکړه او په دې طریقه ئې د

روسیانو د پیش قدمو خاتمه وکړه.

دریمه خبره دا وه چې د روسیانو دا منشا وه چې حکومت افغانستان او روسیان دې د خپل خپل حکومتونو د سرحداتو پوله بغیر د انګلستان د مداخلت نه کیږدي. څلورمه خبره دا وه چې زما راولپنډۍ ته تلل د روسیانو دپاره ډیر د خفګان باعث وو ځکه چې روسي اخباراتو په 1880ء کښې څۀ وخت چې انګریزان د کابل نه تلل دا خبره مشهوره کړې وه چې انګریزانو په خپله رضا کابل نۀ دے پرېښے او نۀ ئې عبدالرحمٰن سره د دوستی په سبب پرېښے دے بلکې هغوي د شکست خوړلو نه پس د کابل نه تښتیدلي دي. راولپنډۍ ته زما د تللو یوه غټه وجه دا وه چې په دې طریقه به د دې دروغژن بیاناتو تردید وشي او روسیانو ته به دا معلومه شي چې د فیرنګیانو دوست یم. د دې نه علاوه دا خبره هم دنیا ته ښکاره کیدل پکار وو چې د حکومت برطانیه او زما د حکومت ترمنځ تعلقات د وړومبے نه هم زیات مضبوط شوي دي. د مذکوره بالا وجوهاتو په سبب او شاید چې په دې وجه هم چې د روسیانو عامه پالیسي دا وه چې مشرق طرف ته دې هغوي پښې وړدې کړي. له دې کبله د روسي فوځ یوه دسته پنجده طرف ته راوړاندې شوه. چونکې ماته دا خطره د وړومبے نه معلومه وه له دې کبله ما دا مناسب وګنهله چې یوه مضبوطه فوځي دسته زۀ هم ولیږم چې روسیان په پنجده کښې د داخلیدو او د قبضې کولو نه منع کړي. لکه چې څۀ رنګ ما یو ځل وړومبے دا شان کړې وو او ایم آئي وانوف د رارسیدو نه وړومبے ما په شګنان او په روشن باندې قبضه کړې وه. لیکن هر څومره چې ما انګریزي حکومت ته د دې خبرې اهمیت ظاهر کړو چې یوه مضبوطه فوځې دسته د دې دپاره استول پکار دي چې پنجده د روسي دست برد نه بچ کړې نو هم هغه هومره زما د وینا چا څۀ پروا ونۀ کړه. کوم جواب چې هغوي ماله راکړو هغه دا وو " هر یو ځاے چې د افغانستان د فوځ په قبضه کښې دے هغې له روسیان دګوتو وروړلو جرأت هم نشي کولے" نۀ صرف دومره بلکې انګریزانو د پنجده د حفاظت متعلق ماته دومره اطمینان راکړو او زما د زړۀ ئې تر دې حده تسلي وکړه چې په یویشتم نومبر 1884ء سر پیټر لمسډن ماته ولیکل چې زۀ به د دې خبرې پوره بندوبست وکړم چې د روسیانو او د افغان فوځونو تر منځه هیڅ قسم جنګ پیښ نۀ شي.

په دې اثنا کښې روسي فوځونه ډیر په شتاب راروان وو او په دیارلسم مارچ 1885ء روسي فوځ په قزالتیپ باندې را یو ځاے شو او هغه ځاے ئې مستحکم کړو. افغاني فوځونه د اکتیپ په مقام د دریائے آمو په کسه غاړه پراتۀ وو. په دې فوځ کښې صرف اووۀ شلې توپچیان سره د څلورو د زیړو توپو او څلور د غرۀ د توپو، او یوه معمولي د پیادو دسته وه. په دیرشم مارچ افغاني فوځ په پُل خشتي باندې وۀ او روسي فوځ په قزالتیپ یعني د یو بل نه صرف په یو میل د فاصله باندې پراتۀ وو. په نهۀ ویشتم مارچ جنرل کوماروف د پښتنو جرنیل

ته پیغام راولیږلو چې ته خپل فوځونه بني غاړې ته بوځه ګني نو جنګ به وشي او مونږ به د پښتنو په فوځ باندې حمله وکړو.

تر دې لحظې پورې د مشن (د حد براری جرګه) انګریزي افسرانو او د هغوي سپاهیانو زما د فوځ افسرانو ته د هر قسم اطمینان ورکړے وۀ چې تر څو پورې د پښتنو فوځ د خپل مقام نه نور وړاندې نشي تر هغې به روسیان په هغوي باندې د حملې کولو جرأت ونۀ کړي. او نوره ئ دا خبره هم وکړه چې کۀ روسیانو زمونږ په سپاهیانو حمله وکړه حالانکې مونږ د خپل مقام نه وړاندې شوي نۀ وو نو بیا به دا د عهدنامو خلاف ورزي وي چې کومې د حکومتونو په منځکښې شوي دي او بیا به د هغې بابت د روسیانو نه بازپرس کیږي. چونکې ما خپل جرنیل غوث الدین ته دا سخت هدایت کړے وۀ چې تۀ د مشن د انګریزي افسرانو د نصیحت نه برخلاف هیڅ کار مۀ کوه په دې وجه هغه د خپل ځاے نه ونۀ خوځیدو. په بله ورځ یعنې په دیرشم مارچ د روسي فوځ پوره یو بریګیډ په هغه ورکوټي افغاني دسته حمله وکړه چې کومه هلته پرته وه. هرکله چې انګریزي افسرانو دا خبر واؤریدو نو هغوي سره د خپله فوځه او د نوکرانو هرات طرف ته وتښتیدل.

جنرل غوث الدین خان او د افغاني فوځ نورو افسرانو انګریزي افسرانو ته دا خبره ور په یاد کړه چې تاسو خو مونږ له دا اطمینان راکړے وۀ چې روسیان به د پښتنو په مورچو د حملې کولو جرأت نۀ کوي او کۀ چرې هغوي دا حمله وکړه نو افغانان د انګریزانو نه د امداد مطالبه کولے شي نو چونکې مونږه ستاسو په دې خبرو اعتماد کړے دے دې دپاره پکار دي چې تاسو مونږه د روسیانو مقابلې ته یواځې نۀ پریږدئ. لیکن په دې یوه خبره هم انګریزان د تیښتې نه منع نۀ شول. افغانانو بیا دې انګریزانو ته سوال وکړو چې مونږ ته خپل ټوپکونه عاریتاً راکړئ ځکه چې مونږ سره پټاخ دار ټوپک دي او روسیانو سره دنباله پُر او په دې وجه مونږ په نقصان کښې یو. د دې نه علاوه د افغانانو ټوپکونه او دارو د زیم او باران په وجه ډیر خراب او بیکاره شوي وو لیکن باوجود د دې چې انګریزانو د افغانانو په مرسته د وردیدو وعده کړې وه، هغوي افغانانو له د ټوپکو ورکولو نه انکار وکړو او د بهادرو پښتنو دا ورکوټے ټولے ئ په ځاے پریښودو چې هغوي ځان له وجنګیږي او په میدان جنګ کښې ځان له مړۀ شي. انګریزان د یوې لحظې د ایساریدو نه بغیر هرات ته وتښتیدل. ما دا خبره هم اوریدلے ده اګر چې زۀ دا نشم وئیلے چې دا تر کومه پورې درست ده چې انګریزي فوځ او افسران دومره بې حوصلې شول او وویریدل چې په سخت هیبت کښې وتښتیدل او د دوست او دشمن تمیز پکښې پاتې نشو او چونکې ډیره سخته یخني وه له دې کبله د هغوي یو څو غریبانان دیسي نوکران د خپلو تټوانو نه چې په هغوي پسې روان وو راپریوتل او مړۀ شول. په افسرانو کښې هم بعضې بعضې د خپلو اسونو نه راپریوتل لیکن زۀ د هغوي نومونه اخستل

نـهٔ غوارم. چونکې د افغاني فوځ بهادرو سپاهیانو ته د خپل قوم په وقار باندې ډیر لوے فخر وهٔ د دې دپـاره هـغـوي د هغې وقار د ساتنې دپاره خپل ځان په جنګ کولو دومره مجبور وګڼلو چې پـه هـغـوي کښې زیاتـه حصه یا قتل شول او یا زخمیان شول. ولې ارمان دے چې یو خو هـغـوي سـره ډیـر خـراب ټوپکونه وو او بل دا چې د دشمن د طاقت په مقابله کښې هغوي په شـمار کښې ډیر لږ وو. له دې کبله هغوي هیڅ ونهٔ کړې شو او صرف یو څو تنه د شکست نه پـس هـرات تـه راورسیـدل. د انګـریزانو د دې بیهوده رویې دا نتیجه شوه چې په پښتون قوم کښې د انګـریزانو وقار تر نن ورځې پورې بیشانه ډیر کم پاتې شو. هرچند چې ما خلقو ته د دې خبرې د اطمینان ورکولو کوشش وکړو چې په دې ورځو کښې مسټر ګلیډسټون د لبرل پارټۍ (چې دغه ورځو کښې بر سر حکومت پارټي وه) لیډر وهٔ او دغه وجه وه چې انګریزانو دا شـان کمزورے پالیسي اختیار کړه ګڼې نوانګریزانو به ضرور د روسیانو نه د هغوي د خپل غـلـط کار تاوان اخستے وهٔ لیکن زما قوم زما په دې خبرو غوږ کښېنښودو او ماته ئې په جواب کښې ووې چې کهٔ د مخکښې دپاره مونږه یو دشمن سره په جنګ کښې ونښتو نو مونږ ته به پتـه څـنګـه لـګـي چې لبـرل پارټي (ازاد خیال) برسرحکومت ده او کهٔ کنزرویټیو (قدامت پسـنـد) پـارټـي؟ او بیـا نور زما خلقو دا ووئیل چې کهٔ چرې لبرل پارټي د دې قابل نهٔ وه چې مـونـږ سـره امـداد وکـړي نو بیا مونږ ته انګریزي فوځ او د مشن مشرانو دا ولې ونهٔ وئیل چې مونږ به په اخر وخت کښې د تاسو نه تښتو. د دې دپاره چې مونږ د انګریزی د دې متل مطابق "څـوک چـې وړومبے خبـردار شـي هـغـه خپل Forewarned is to be Forearmed احتیـاط کوي." د خپل ځان دپاره څهٔ نور څهٔ انتظام کړے وے کهٔ چرې مونږ ته دا پته لګیدلے وے چې انګریزان د خپلو وعدو د پوره کولو اراده نهٔ لري. د دسمبر د میاشتې نه هرکله چې د دې غـلـط فهـمـو ابتـدا وشوه تر دیرشم مارچ پورې د افغاني فوځ دپاره دا ډیره اسانه خبره وه چې د پـنـجـده د حـفـاظـت دپاره د کابل نه هرات ته رسیدلے وے اګر چې د کابل نه فوځونه استـولـو تـه هیـڅ ضـرورت نهٔ وهٔ ځکه چې په هرات او ترکستان کښې د افغاني فوځونو کافي تـعـداد مـوجـود وهٔ. مختصر دا چې روسیانو په دیرشم مارچ 1885ء د پـنجده موضع په زور واخستـه او چـونـکـې په هیچا کښې هم دا طاقت نهٔ وهٔ چې هغه ئې بیا اخستې وے د دې دپاره هغه لا هم هغسې د هغوي په قبضه کښې ده.

دغـه وخـت زهٔ پـه راولپـنـډۍ کښې وم او لارډ ډفرن سره پـه بحث مباحثه کښې مـصـروف وم. پـه کـوم مـابنام چې لارډ ډفرن ماته دا اطمینان راکړو چې کهٔ چرې روسیان په افـغـانـي عـلاقـه وبلوسیدل نو انګریزان به مونږ ته امداد راکوي نو هم په هغه مابنام لارډ ډفرن پخپله د روسیانو د پنجده په موضع باندې د بلوسیدلو او په هغې باندې د هغوي د قبضې کولو خبر ماته راواستولو لیکن زهٔ دا شان سړے نهٔ وم چې په دې خبره بې حوصلې شم له دې کبله ما

په اطمینان سره دا خبره واوریده چې د آئنده دپاره به د هغې نه عبرت واخلم.(۱)

هم د 1885ء په کال کښې ما د کلمان د خلقو د مطیع کولو او د هغوي د ملک په خپل ملک کښې د شاملولو دپاره احکام جاري کړل. کلمان د غرونو یو څو سوکې دي چې د لمکان (۲) د صوبې نه مشرق ته پرتې دي. یو خواهش خو زما دا وُ چې زهٔ دا خلق پرامن رعیت کړم او ازاد ئ پرېږدم ولې د دې نه علاوه د هغوي د مطیع کولو دپاره ما سره یوه خاص وجه وه. دغه وجه دا وه چې هر چا به چې زما برخلاف بغاوت وکړو یا به چا د جلال اباد په خواوشا کښې قتل یا نور جرائم وکړل نو هغوي به د کلمان د غرونو په دې سوکو کښې پناه واخستـه. چونکې دې درې ته یوه لار هم نهٔ ده تلے په دې وجه نهٔ خو هلته چا توپې بوتلے شوې او نهٔ سوارهٔ هغه درې ته تلے شو. صرف د پیادو سړو دپاره یوه نرۍ لار دې درې ته تلې وه چې هغه ډیره تنګه وه چې صرف یو سړے به په یو وخت په هغې تلے شو. او کهٔ چرې دوه یا درې تنه هم په دې سوکو ناست وے او صرف ګټان ئ غورځولے نو هغوي د یو لوے فوځ په اسانۍ سره مقابله کولے شوه ځکه چې کهٔ هر څومره یو فوځ لوے وي ولې هغوي بغیر د دې نه چې د یو بل نه وړاندې وروستو یو یو تلے په بله طریقه د هغوي دپاره په دې لاره تلل ناممکن وو. دا وجه د هغوي د مضبوط والي وه او په دې سبب هغوي د دې نه وړومبے هیچا نهٔ وو فتح کړې.

---

(۱) "دا نوټ د میر منشي سلطان محمد خان د لاس لیکلے شوے دے. "په 1886ء کښې هر کله چې مسټر کرزن چې بیا لارډ کرزن شو او د هندوستان وائسرائے شو یو ځل امیر سره روبرو په مختلفو معاملاتو باندې بحث کولو نو ماته په هغه موقع د خپل بادشاه امیر عبدالرحمٰن او مسټر کرزن تر منځه د ترجمان فخر حاصل وُ. په دوران ګفتګو کښې امیر د پنجده د واقعې ذکر وکړو او اګرچې په ظاهره ئ د توقو لهجه اختیار کړې وه ولې درحقیقت هغهٔ په ډیرې ترشۍ او سختۍ سره د دې خبر متعلق ذکر وکړو. دا ډیره عجیبه خبره ده چې مسټر کرزن د دې په جواب کښې امیر ته ووئیل چې دغه وخت زمونږ پارټۍ برسر حکومت نهٔ وه بلکې د مسټر ګلیډسټون لبرل حکومت برسراقتدار وو، امیر ډیر په قهقهه وخندل او وې وئیل زهٔ افسوس کوم چې نهٔ زهٔ پیغمبر یم او نهٔ ماته الهام کیږي چې ماته په راتلونکے زمانه کښې دا پته ولګي چې کهٔ چرې په ما څهٔ مصیبت راغلو نو لبرل حکومت به برسراقتدار وي او کهٔ کنزرویټو او دا به هم معلومه شي چې کهٔ چرې بله موقع پیښه شي نو آیا کنزرویټو پارټۍ به د لبرل پارټۍ نه څهٔ بله لار اختیار کړي؟ د امیر عبدالرحمٰن یوه پسندیده مقوله دا وه چې د برطانیه په آئین کښې د ټولو نه د هوښیارۍ څیز دا دے چې هر کله د هغوي نه څهٔ غلطي وشي نو انګریزان څهٔ دا شان انتظام وکړي چې یوه پارټۍ په بله پارټۍ باندې د هغې الزام ولګوي."

(۲) لغمان در حقیقت لمکان دے دا صوبه نهایت زرخیزه او خوړه صوبه ده چې د جلال اباد او د کابل په منځکښې د پیښور د لارې قطب ته پرته ده. د پښتنو مؤرخین وائي چې مهتر لامک نومے د نوح علیه السلام یو زوے په دغه ځاے کښې د طوفان نوح نه پسته په اوچه زمکه کوز شو. په دې وجه دا ځاے د هغهٔ په نوم بللے شي. په مندرار کښې چې د لمکان په صوبه کښې یوه موضع ده په هغې کښې یوه لویه مقبره ده چې هغې ته د لام یا د لامک پیغمبر مقبره وئیلے شي. د لغمان خلق په ټول افغانستان کښې ډیر هوښیار او چالاک خلق دي."

زما د فوځ افسران حسب ذیل وو:

☆ غلام حیدر خان توخي کمانډنټ انچیف،
☆ دوست محمد خان جبار خیل،
☆ میر شنا ګل،
☆ محمد ګل خان جبار خیل، (دا سړے په 1896ء کښې په بندي خانه کښې مړ شو)
☆ او محمد افضل جبار خیل.

د دې افسرانو د لاندې دوه قسمه فوځ وۀ یعنې باقاعده او څنې د غرونو د قبائلو ملیشیا وه. یعنې بې قاعدې فوځ چې د غرۀ په ختو کښې خاص طور سره ماهران وو. هر کله چې تیارۀ شوه نو افسرانو خپل ځان په رسو باندې د دې غرونو په یوه سو که وخیژولو او کومه لاره چې باغیانو نیولې وه د هغې خوا ته هغوي نزدې هم نۀ شول. او هر کله چې هغوي خپل فوځونه په دې طریقه په دغه ځایونو بغیر د دې نه چې په دره کښې دشمن د هغوي په نقل و حرکت پوهه شوے وے راجمع کړل نو هغوي بیا په دشمن حمله وکړه. د دشمن طاقت څۀ ډیر نۀ وۀ د هغوي ټوله ابادي یو زر کلهې وے د یوې معمولي مقابلې نه پس باغیانو شکست وخوړو او بیا هغوي صلح وکړه او وعده ئې وکړه چې بیا به مونږ بالکل د پرامن رعایا په شان وسیږو. لیکن هغوي خپل لوظ او حلف وفاداري مات کړو او په دغا بازۍ ئې په 1886ء کښې زما یو لفټیننټ کرنل سره د هغۀ د دوؤ سوؤ سپاهیانو قتل کړو. دا ځلې مذکوره بالا کمانډنټ انچیف په هغوي حمله وکړه او پوره پوره ئې زیر کړل. او د هغې درې ټوله ابادي ئې د خپل ځان نه وړاندې وړاندې وشړله. او یو کس ئې هم پکښې پرې نښودو. بیا مونږ هغوي له د دې درې د زمکو په بدل کښې نورې زمکې د ګرشک، زرمت او د خوست په صوبو کښې ورکړې چې د هغوي اصلي کورونه ډیر لرې لرې وو. د هغوي په ځاے مونږ دې درې ته د لمکان او د نورو صوبو خلق واستول (۱) په دې طریقه د درې د مشکلاتو د همیش دپاره خاتمه وشوه.

زما د تخت نشینۍ د ورځې نه تر دې ورځې پورې چې څومره خانه جنګۍ چې په

---

(۱) په افغانستان کښې د جلاوطنۍ عامه قاعده دا ده چې هر کله یوه قبیله یا یو خاندان څۀ ډیر خراب جرم یا څۀ بغاوت یا سازش وکړي چې د هغې نه امن عامه کښې د خلل د واقع کیدلو قرار واقعي خطره وي نو دا شان خلق د هغې صوبې نه چې کوم ځاے هغوي د دې جرائمو مرتکب شوي وي او چارچاپیره ئې خپل خراب اثر خور کړے وي وویستلے شي او د حکومت نورو اطرافو ته ولیږلے شي هلته بیا هغوي له هم هغه شان زمکې او کورونه ورکړې شي چې کوم د هغوي نه اخستي شوے وي. بعضې اوقات د دې قاعدې نه استثنا هم کیږي. لکه په داسې حالت کښې چې د امیر دشمنان وي او د هغوي دوستان په هندوستان یا روس کښې وسیږي نو دغه شان خلق داسې ځایونو ته جلاوطن کړې شي چې د هغوي دوستان پکښې وسیږي."

ملک کښې شوي دي نو په هغې کښې ځنې خانه جنگۍ مقابلهً ورړې وې او په معمولي زور او توجه سره زر دباؤ شوې او څۀ خاص تکليف ئ ماله را نۀ کړو او نۀ د هغې څۀ خطرناکې نتيجې راووتې ليکن ځنې دا شان خانه جنگۍ هم وې چې ډير خطرناک شکل ئ اختيار کړو او تر ډيرې مودې پورې جاري وې. بلکې د دې نه زياتي هم ځنې دا شان وې چې په ټول ملک باندې د عام بغاوت آثار او نښې ښکاره شوې او د هغې نتيجه څلور مختلف خانه جنگۍ وې يعنې:

(۱) په 1888ء کښې محمد ايوب خان سره د قندهار په مقام جنگ لکه چې څنګه ما وړومبې د دې تفصيل بيان کړې دې. دغه وخت بې علمه مليانو د ملک د ټولو خلقو زما برخلاف د راپاڅولو کوشش کړې وۀ. د دې غرض دپاره چې هغوي زما برخلاف جهاد وکړي ليکن هغوي په دې کښې کامياب نۀ شول.

(۲) د غلجو بغاوت چې د هغې متعلق به زۀ هم په دې حصه کښې تفصيل ليکم. دا بغاوت قريباً دوه کاله جاري وو.

(۳) محمد اسحاق په 1888ء کښې په ترکستان کښې بغاوت وکړو.

(۴) د هزاره جاتو بغاوت چې هغوي په 93-92-1891 کښې کړې وۀ.

د دې اخري دوؤ بغاوتونو قصه به زۀ وروستو وکړم. دلته مونږ د غلجو د عام بغاوت ذکر کول غواړو. د دې عام بغاوت اسباب او د هغې نتائج حسب ذيل وو:

(۱) لکه چې څنګه ما قبل د دې نه ذکر کړې دې د دې بغاوت وړومبی وجه دا وه چې د شير علي او يعقوب په عهد حکومت کښې د هغوي د بدنظمۍ او د کمزورۍ په سبب قريباً قريباً هر يو ملا او خان خپل ځان خودمختار گڼلو او هغوي د شهزادګانو او د پيغمبرانو غوندې لار شرله. د غلجو مليان او خانان قريباً ټول په دې تعريف کښې راتلل. دا خلق ډير مضبوط جنګجو او په افغانستان کښې د ټولو نه بهادره قبيله ده. په شمار کښې هم دا قبيله د هغه دريو لويو قبيلو نه ده چې کوم په دې ملک کښې وسيږي. يعنې دراني، هزاره او غلجي. د افغانستان د حکومت لاندې د ترکمانانو قبيله هم يوه لويه قبيله ده. بعضې خلق وائي چې هزاره هم منګول يا مغل دي. ليکن هغوي په افغاني قبائلو کښې شامل گڼلې شي. ځکه چې هغوي په ټول ملک کښې خوارۀ وارۀ پراتۀ دي او د ترکمانانو په شان بيل نۀ دي. د غلجو خانان ډير د اثر خاوندان وو او د هر يو سره به ډير ملاتړ د جنګ کولو قابل موجود وۀ. دا خانان او د هغوي ملاتړ ډير ظالمان وو. او د رعيت د خلقو دپاره ډير بې رحمه وو. د هغوي مظالم د هغوي بيحده اختيارات د هغوي لوې لوې محصولونه، د هغوي شوکې او غلاګانې، د هغوي په قافلو باندې حملې، د هغوي په خپلو کښې مسلسل جنګونه او د هغوي عام طور سره د خلقو قتل عام، ټول مخلوق ته ښکاره وۀ. نۀ صرف د دې ملک مخلوق ته بلکې د دنيا ټولو خلقو ته. په دې وجه دا قدرتي خبره وه چې د هغوي ما سره سخت نفرت پيدا شوې وۀ او هغوي زما د حکومت د تباه کولو هر قسم کوشش کړې وۀ. ځکه چې زۀ په دنيا کښې

اخري سړي وم چې که ما د خپلو سترګو د وړاندې د هغوي په دې بدعملۍ چشم پوشي کړې وې نو نتيجه به ئ ډيره خرابه وې. سعدي رحمة الله عليه وائي:

ازان مار بر پاے راعی زند
کہ ترسد سرش را بکوبد بہ سنگ

"مار په دې سبب د شپون په پښه چک لګوي چې هغه په زړۀ کښې د دې نه ويريږي چې دې به زما سر په ګټه وچقوي."

(۲) ما شير خان توخي غلجي په دې سبب قيد کړے وۀ چې هغۀ په 1881ء کښې بغاوت کړے وۀ لکه چې څنګه ما په يو باب کښې ذکر کړے دے او په دې وجه د هغۀ څو دوستان او ملاتړ خفه وو.

(۳) عصمت الله خان او نور د غلجو خانان د شير علي د خاندان دوستان او خپلوان وو او په دې وجه هغوي زما دشمنانو سره آمدورفت ساتلو. هغوي به په قبائلو کښې زما برخلاف سازشونه کول، په دې وجه ما په 1882ء کښې عصمت الله خان ګرفتار کړو. دے د غلجو خان وۀ او په خلقو کښې د بې چينۍ باعث وۀ.

(۴) مشهور و معروف ملا مشک عالم ("د دنيا خوشبوئي" ما به هغۀ ته موش عالم يعنې د دنيا مږه وئيل. دا نوم د هغۀ دپاره په نسبت د وړومبي نوم ډير موزون وو ځکه چې د هغۀ شهره د مږې په شان وه او د هغۀ کارونه د دې نه هم ډير خراب وو.) د غلجو غازيانو سره يو ځاے شو او د خلقو نه به ئ په زور روپۍ اخستې. هغوي به خپل ځان ته غازيان او مليان وئيل. د دې دپاره چې هغوي د خلقو په نظر کښې لوے خلق ښکاره شي. چونکې ما دا ټول فضوليات بند کړي وو په دې سبب هغوي هغه خپل اثر چې کوم هغوي ټول عمر د خپلو غلجو په ناتعليم يافته او غير مهذب قوم باندې استعمال کړے وۀ، زما برخلاف هم استعمال کړو او ماله ئ ډير لوے تکليف راکړو. هغوي تر ډيرې مودې پورې دا سازشونه جاري وساتل او دا شان اور ئ ولګولو چې د هغې نه يوه لويه خانه جنګي برپا شوه او زرګونه خلق ئ په مصيبت کښې واچول. د زرګونو ئ وينې تو ئ کړې.(۱)

---

(۱) دا نوټ د مير منشي سلطان محمد خان دلا س دے: "د امير عبدالرحمٰن خان يو پسنديده مقوله دا وه چې څومره جنګونه او قتلونه چې په دې دنيا کښې د جاهلو مليانو د لاسه شوي دي دا د بل هيڅ فرقې د لاسه نۀ دي شوي. او دا به ئ هم اکثر وئيل چې کۀ ممکن وے نو ما به دا قسم هر يو ملا قتل کړے وۀ. هغۀ به دا هم وئيل چې د افغانستان د ترقۍ په لار کښې لوے مانع دا شے دے چې د دې قسم مليانو د مذهب په اړ کښې خلقو ته هغه هغه خبرې ښودلي دي چې د محمد ﷺ د اصولو او عقائدو نه بالکل برخلاف دي. او چونکې دا خلق په دروغه د مذهب ليډران جوړ شوي دي له دې کبله هر څومره چې زر مونږ ځان د دې خلقو نه خلاص کړو نو هغه هومره به ښه وي. يو ځل داوه خو هغۀ د هغوي لويې لويې ډيرې په رسۍ تړلے وې او کله کله به ئ د يو ډيره د بل ډيرې پورې وتړله او بيا به ئ حکم وکړو چې د يو بل ډيرې راکاږئ.

الله پاک د خپل پیغمبر پاک په ذریعه په قرآن پاک کښې دا شان وائي " د خدائے په ملک کښې تاسو په امن او په انصاف وسیږئ او د فساد او د خونریزی باعث کیږئ مه. ځکه چې الله تعالیٰ دا شان خلق نۀ خوښوي چې څوک د هغۀ په زمکه باندې په امن کښې خلل اچوي." افسوس دے چې د دې ملیانو عمل د هغې مذهب د عقیدې برخلاف دے چې د کوم مذهب هغوي پیروکار دي.

(۵) ما په ټول ملک کښې د هغې مالیې د جمع کولو احکام جاري کړي وو چې کومه په خلقو بقایا پرته وه او خلقو دا نۀ غوښتل چې هغوي دا مالیه ادا کړي.

(۶) د افغانستان غوندې ملک کښې چې د هغې خزانه دا وخت بالکل خالي وه د اندروني اخراجاتو دپاره د ډیرو روپو سخت ضرورت وۀ او د دې دپاره هم چې په سرحداتو باندې نوي استحکامات جوړ شي او زاړۀ په ښۀ حالت کښې وساتلے شي چې ملک د هغې ټولو بیروني طاقتور حکومتونو د دست برد نه محفوظ شي چې چا هر وخت د وړو ټپوسانو په شان د خپل کمزوري ښکار د تیرولو دپاره سترګې وازې نیولي دي.

د ټول سلطنت قریباً نیمه مالیه به حکومت د وظیفو په شکل کښې دې ملیانو، سیدانو او بیشماره برائ نام بزرګانو او پیرانو له ورکوله. دا د حکومت د تباهي او کمزورۍ دپاره په دوه رنګه نقصاني څیز وۀ. یو خو د سرکاري مالیې هغه نصف حصه به هسې ضائع کیدله کومه چې دې خلقو به ځان له ټولوله. حالانکې نۀ خو د هغوي د دې ټولولو څۀ حق وۀ او نۀ هغوي د دې په عوض کښې څۀ کار کولو. بله دا چې دې وظیفو به خلق د بیکارۍ ژوندون ته مائل کول او دا لالچ به ئې د هغوي په زړۀ کښې پیدا کولو چې بغیر د څۀ کار کولو نه مونږ د حکومت نه روپۍ حاصلې کړے. په دې طریقه بیکاره خلقو ته انعام او اکرام ورکیدے شو. حالانکې نۀ خو هغوي د ملک دپاره مفید وو او نۀ د خپل ځان دپاره. ما دا بیشماره وظیفې چې په سرکاري خزانه باندې یو لوے بوج وۀ د خپل قلم په یو جنبش سره بالکل بندې کړې اودا مې ووې چې پس د دې نه به تنخواه ګانې هغه کسانو لهِ ورکیدے شي چې څوک د خپل خپل لیاقت مطابق خدمت وکړي کۀ چرې دا خلق خپل ځان د تنخواه د حاصلولو حقدار ثابتول غواړي نو پکار دي چې هغوي خاص خاص امتحانات پاس کړي. په دې طریقه د ټولو خودساخته اهمو سړو وظیفې سره د دې مذکوره بالا موش عالم د ټبر د خلقو او د نور همچو قسم مړو وظیفې بند شوې. دا روپۍ به بیا هغوي بهادرو سپاهیانو له په تنخواه کښې ورکیدے شوے چې څوک د دې مضر او موذي مړو د قتلولو په کار مقرر شوي وو. د دې دپاره چې بیا دا مړي د خلقو په کورونو کښې د خپل ناجائز غصب په ذریعه نورې سوړې ونۀ کړي.

زما دې قدم په ملیانو او د مذهب په دې لیډرانو او برائ نام بزرګانو کښې یو لوے

شور پیدا کړو او لوړے لوړے فریادونه ئ وکړل دا بغاوت چې د کوم تشریح مونږ کونکي یو د دې سلوک نتیجه وه. مگر خوش قسمتي دا وه چې په دې بغاوت کښې زهٔ د همیش دپاره د ټولو مېږو نه خلاص شوم. وړومبنے کوشش چې دې خلقو زما د حکومت په بل مخ د اړولو کړے وهٔ، د هغې رپورټ ماله په اپریل 1886ء کښې وشو او هغه دا شان چې هغوي یوه چیټهی د انگلستان ملکې ته ولیکله او د سر اولیور سینټ جان په وساطت ئ هغې ته ولیږله. په چیټهی کښې غلجو دا شان لیکلي وو " کهٔ چرې ستا د افغانستان مظلوم او تنگ حال رعایا ته د فائدې او د امداد رسولو نیت وي نو تاله د دې نه بهتره موقع بله په لاس نشي درتلے لیکن تاله پکار دي چې مونږ له سمدستي امداد راکړې." زهٔ دا نشم وئیلے چې دا چیټهی د حکومت برطانیه په وزیرانو کښې یو ذمه دار وزیر ته ورسیدلے او کنه ولې دومره قدرې ماته معلومه ده چې باغیانو ته د دې هیڅ جواب موصول نشو. د دې نه علاوه هغوي محمد ایوب ته د ایران نه د راتلو او هغوي سره د شاملیدو دعوت ورکړو لیکن د هغهٔ ټول کوششونه په افغانستان کښې د داخلیدو په سلسله کښې ناکامیاب شول. د دې تشریح به بیا بل ځاے وشي. باغیانو چې نور څهٔ څهٔ وسائل اختیار کړل هغې سره زما غرض نشته ولې دومره خبره یقیني ده چې هر کله هغوي خفیه سازشونه وکړل او هیڅ کامیابي ئ حاصله نهٔ کړه نو هغوي ښکاره زما برخلاف وسله وچته کړه لکه چې څنگه اوس به زهٔ د هغې تشریح وکړم.

جنگ د 1886ء په ژمي کښې شیر خان د امیر احمد زوي دا رنگ شروع کړو چې هغهٔ د سردار گل محمد خان زوړے چې د قندهار د سردار کوندل خان نمسے وهٔ هر کله چې هغه د قندهار نه کابل ته راروان وهٔ، په یو مقام کښې قتل کړو چې د مشکي او د چار دیهه په منځکښې واقع وهٔ. شیر خان د هغهٔ ښځه بال بچ او مال قابو کړو او وهٔ ئ تښتولو. یوه بله غدۍ د غلجو اندړ او د هوتک قامونو د مشکي په مقام د درانو د قبیلې په یوه پلټن باندې ووهله. چې د قندهار نه کابل مرزا سید علي سره راروانه وه. او چونکې اوس اوس برتي شوې وه په دې سبب بې وسلې وه په دې غدۍ کښې غلجو اووهٔ شلې سرکاري اوښان، ابیا خیمې او دیرش زره روپۍ وتښتولے. زهٔ چې د غلجو د قبیلې چې مشک عالم هم د دې قبیلې نه وهٔ خبر شوم نو ما جنرل غلام حیدر خان توخي. حاجي گل خان کمانډنټ (چې اوس بریگیډیر دے) او کرنل محمد صادق خان (چې اوس په قندهار کښې بریگیډیر دے) سره د دوؤ پلټنو څلور د رسالې رجمټو او د دوؤ توپخانو د تیاریدو حکم وکړو. دا فوځ غزني ته راورسیدو او یو څو ورځې ورپې معرکې ئ په دوه مقامونو یعنې د دهنے شیر او ناني کښې وشوې. په هغې کښې باغیانو شکست وخوړو او خوارهٔ وارهٔ شول.

په ژمي کښې خلق خاموش پاتې شول لیکن په دې ټوله عرصه کښې هغوي په خفیه سازشونو کښې او زما برخلاف د ټولو غلجو د راوچتولو په تیارو کښې مصروف وو او

هر کله چې هغوي په خپلو تجاويزو کښې کامياب شول نو د مارچ په مياشت کښې يو عام بغاوت وشو. د مشک عالم زوے عبدالکريم ملا بيا د کال 1887ء د مارچ په مياشت کښې د دې مضمون يو اعلان وويستو. چې ما سره دولس زره د جنگ سړي تيار موجود دي. نو کهٔ چرې دا نور قبائل ما سره شامل شول نو فتح به يقيناً زمونږه وي.

چونکې ماته دا اطلاع رارسيدلے وه چې د کال 1886ء د ژمي په بغاوت کښې چې د کوم تشريح په وړومبو فقرو کښې شوې ده د هوتک قبيلې خلقو هم حصه اخستې وه په دې وجه ما سرهند سکندر خان چې د جنرل غلام حيدر خان پلار وهٔ هدايات واستول چې د قندهار نه د هوتکو قبيلې ته روان شه او د هوتکو د مقام نه يوه توره او يو ټوپک في کور په طور د جرمانې وصول کړه. د سرهند په رارسيدو باندې د هوتک قبيلې رنج او غصه نوره هم زياته شوه او يو عام بغاوت په اندړ ، هوتک، ترکي او نور د غلجو په قبيلو کښې راپيدا شو. دې خلقو خپلې ښځې او د کور خلق وزيرو، ژوب او هزارو ته وليږلې د دې دپاره چې زما د فوځ برخلاف د جنگ کولو دپاره وسله وچته کړي. په دغه ورځو کښې د غلجو په ملک کښې زما څهٔ مضبوط فوځ موجود نهٔ وهٔ او د غزني، قلات غلزي او د معروف غوندې لوے لوے ښارونه پوره پوره مستحکم شوي نهٔ وو. جنرل غلام حيدر خان سره د پيادوؤ صرف دوه بټالين او درې رجمټې د پيادوؤ وے ما فوراً حکم وکړو چې شپږ سوه پياده سپاهيان د کرنيل صوفي د کمان لاندې هم د مارچ په مياشت کښې دې د سکندر خان د دستې په کمان کښې روان شي. ما دا حکم هم وکړو چې څهٔ پياده مليشيا او نوې برتي شوے دراني بټالين دې هم سکندر خان سره يو ځاے شي. دا موخر الذکر سړي څهٔ ډير مفيد کار ثابت نهٔ شول. ما نور فوځونه هم د کابل نه ډير زر د جنرل غلام حيدر خان امداد له واستول.

د جنگ قسمت اول خو د باغيانو په حق کښې شو عيسیٰ خان د معروف گورنر څهٔ وخت چې هغه سکندر خان سره د شامليدو دپاره روان وهٔ په لاره شکست وخوړو کومو باغيانو چې هغهٔ له شکست ورکړو هغوي د شاه خان هوتک د کمان د لاندې وو. په دولسم اپريل سکندر خان هم په هغه وخت او هم په هغه ځاے د باغيانو سره بل جنگ ونښلولو او وړومبے ئې شکست وخوړو ليکن په اخر کښې ئې فتح حاصله کړه.

هم دې سره سم يو بل جنگ قطب ته روان وهٔ هلته جنرل غلام حيدر خان ښهٔ په نره د ترکي او د اندړ غلجو برخلاف جنگيدلو او د يوې سختې جگړې نه پس هغه خپل پلار سکندر خان سره (چې هغهٔ د هوتکو د لاس نه شکست خوړلے وهٔ) د يو ځاے کيدو دپاره په زور وړاندې کيدو کښې کامياب شو. دا دواړه فوځونه د مئ په مياشت کښې يو ځاے شول. دا دواړه فوځونه چې يو ځاے شو نو د هغې نه څلور پلټنې د پيادوؤ او دوه رجمټې د رسالې او اتلس توپې جوړې شوې. د دې نه علاوه د بهلول خان ترکي د کمان د لاندې څنې وفادار

رعايا هم وو چې د حکومت فوځ ته ئ امداد ورکولو . د دشمن طاقت ډېرش زره د جنګ سرې وو. او هغوي خپل ليډر شاه خان هوتک له د امير خطاب ورکړے وۀ. باغيانو ته به مسلسل امداد او کومک د هر طرف نه رارسيدلو. او ټول هغه غلجي چې د حکومت برخلاف وو هغه هم هغوي سره په امداد کښې شريک شول. دا افواه هم ګډه وه چې باغيانو روسيانو ته د امداد درخواست ليږلے وۀ او د ميمنې او د هرات خلقو ته او ايوب ته ئ ايران ته د کومک دپاره سوال جواب ليږلے وۀ او د هرات اوميمنې خلقو ورته ښه هم کړي وو. او په هرات کښې چې کوم فوځونه زما مقيم وو، هغوي کښې اکثر تعداد د غلجو وۀ نو څۀ وخت چې هغوي دا واوريدل چې زمونږ قوم او رشته داران د عبدالرحمٰن د حکومت برخلاف راوچت شوي دي نو هغوي هم خپله رويه بدله کړه او په شپږم جون 1887ء د غلجو د هزارې بټالين يو لوے تعداد چې په هرات کښې مقيم وۀ د هرات په قلا کښې ئ بغاوت وکړو د دې مخالف سپاهيانو تعداد څا چې بغاوت کړے وۀ اتۀ سوه وۀ هغوي د ميخزين يوه حصه تالا کړه او په قلا کښې زما د کمانډنټ انچيف نه چاپيره شول او هغه ئ قيدي کړو. ليکن زما نور سپاهيان چې هغوي هم په هرات کښې وو هغوي وفادار پاتې شول. او د دې نمک حرام غدار سپاهيانو برخلاف ئ وسله راواخسته. په دې غدار سپاهيانو کښې د مقابلې طاقت نۀ وۀ چنانچه هغوي د هرات نه اندرو ته نورو باغيانو سره د يو ځاے کيدو دپاره روان شول. دې غدار سپاهيانو کښې بعضې کسان د باغيانو يو بل لوي ټولي سره چې د مرغاب په مقام راجمع شوي وو شامل شول او چونکې په دې سبب دا باغيان ډيره ډاډه شول نو په دې وجه زما وفادار افسران ډير فکرمند شول. دهغوي په زړونو کښې دا ويره پيدا شوه چې ډير خلق د دې خبرې په انتظار کښې ناست وو چې د تلې تول به کوم وخت درنيږي چې مونږه هم باغيانو سره يو ځاے شو.

په دې خطرناک وخت کښې څۀ وخت چې زما د فوځ غداران سپاهيان باغيانو سره يو ځاے شو نو جاهلو مليانو او زما دشمنانو چارچاپيره دا افواګانې خورې کړې چې هرات د باغيانو په قبضه کښې دے او د ميمنې او د نورو اطرافو خلق هم د حکومت برخلاف راپاڅيدلي دي ليکن زما بهادر جرنيل غلام حيدر خان په هر يو ځاے کښې چې د باغيانو فوځ به هغۀ سره مقابله کوله هغۀ به هغوي له شکست ورکولو او منتشر کيدلو کښې به کاميابيدو.

په دغه وخت هغۀ د اتا ګړ په مقام د هوتک قبيلې يو لوے جمعيت له شکست ورکړو او هر کله چې هغوي ئ په وړو وړو ټولو کښې تقسيم کړل نو هغۀ خپل پلار ته دغه ځاے حواله کړو او پخپله نور مخکښې قطب طرف ته وروړاندې شو او هلته ئ د ډنډې آب ايستاده په مقام د ترکي قبيلې سره يو بل جنګ وکړو دلته هم هغۀ فتح حاصله کړه او بيا ئ

مـرغاب طرف ته پيش قدمي وکړه چي په هغه ځای کښي د هرات غدار سپاهيان نورو باغيانو سـره ښهٔ په جمعيت کښي شامل شوي وو. ما سمدستي د جون په مياشت کښي د هغهٔ د امداد دپـاره د کـابـل نـه دوه پـلـټـنـي د پيادوؤ او څلور سوه د رسالي سوارهٔ وليږل او په اوويشتمه جـولايـی دې ټـول فـوځ په شريکه د باغيانو د فوځ يوې دستي چي دغه وخت د باغيانو اصلي ټـولـي کښـي د شـامليدو دپاره روانه وه شکست ورکړو. نو بيا هغهٔ د هغوي په اصلي او لوي ټـولـي بـانـدې حـمله وکړه د باغي فوځ د خوراک د باربرداری او د کمسريټ انتظام دومره خـراب وهٔ چي دا خـلق د خوراک د کمي په سبب بالکل مرګ ته نزدې وو. مختصر قصه دا چي هـغـوي د جنرل غلام حيدر خان د لاسه مکمل شکست وخوړو. او اګر چي وړوې وړې جـګـړې د اګست په ټوله مياشت کښي جاري وې ولې هغه دومره اهمې او لويې نهٔ وې څکه چي د بغاوت عامه جذبه د دشمن د سختو شکستونو خوړلو په سبب سړه شوې وه.

مـلا عبـدالکريم کرمې ته وتښتيدو او د هغهٔ وررور فضل خان ګرفتار شو او قتل شو. د تيـمـور شـاه غـلـجي متعلق چي وړومبی زما ډپټي کمانډنټ انچيف وهٔ او په 1885ء کښي د پـنـجده د جنګ په وخت کښي د غفلت د جرم مجرم ثابت شوی وهٔ ليکن ما هغه هاغه وخت مـعـاف کړی وهٔ ماته رپورټ وشو چي هغهٔ زما برخلاف په دې بغاوت کښي ښه حصه اخستي ده. هـغـهٔ سره يو کپتان او يو اردلي هم شامل وو. هغه هم ګرفتار شو او کابل ته راوستی شو ما حـکـم وکـړو چـي په ديارلسم د جولايی دې هغه د بغاوت په الزام کښي سنګسار شي. د دې سـنـګـسـاری د سزا نه زما مدعا دا وه چي نور فوځې سړي د هغهٔ نه عبرت واخلي. او هغوي ته پتـه ولـګي چي د داسې سړي دپاره چي هغه د ډپټي کمانډنټ انچيف غوندې اعلیٰ عهدې ته خيـژولـی شـوی وي دا څـومره خرابه خبره ده چي هغه د خپل هغې مالک برخلاف چي د چا نمـک ئې ډيرو کلونو راسې خوړلی وهٔ وسله وچته کړي.

څهٔ وخـت چي جنرل غلام حيدر خان د خپلو شاندار فتوحاتو نه پس کابل ته راغی نو مـا هـغه د ډپټي کمانډنټ انچيف عهدې ته وخيژولو او د هغهٔ د خدماتو په صله کښي مې هغهٔ لـه د الـمـاسـو يـوه تمغه ورکړه. ما د کابل د فوځ نه د سپاهيانو يو لوی تعداد د يوې ورځې په مـزل پـه دې غـرض د پـروانه خان د کمان لاندې واستولو چي هغوي د هغهٔ د استقبال دپاره د اعزازي دستې کار وکړي. دغه شان د غلجو د سختو جګړو خاتمه د هميش دپاره وشوه.

ايـوب خـان تـه چي څهٔ وخت په باغيانو باندې زما د فتح خبر ورسيدو نو هغه د ايراني حـکـومـت د عـلـم نـه بـغير د ايران نه وتښتيدو ليکن زما د محکمهٔ خبر رسانی سلسله دومره

عـمـده او اعـلـيٰ ده چې يو سړے هم چې د څۀ اهميت خاوند وي نۀ په ايران کښې نۀ په روس کښې نـۀ پـه هـنـدوسـتـان يـا افـغـانسـتـان کـښـې خـوځيدے شي چې د هغې اطلاع ماته نۀ وي رارسيدلے.(۱)

---

(د امـيـر عـبدالـرحـمٰن پـه زمـانـه کـښـې د افغانستان محکمهٔ خبر رساني دومره مکملې درجې ته رسيدلے وه چې دومره مخبران په ټوله دنيا کښې په يو ملک کښې هم نۀ وو لکه چې په افغانستان کښې وو. پـه هـر يو کور کښې به يو نه يو مخبر موجود وۀ. ښځه به د خپل څښتن نه ويريده چې هسې نه دې په ما مـخـبـر وي او دا شان به خاوند د خپلې ښځې نه ويريدو. دا شان ډير مثالونه د هغۀ په زمانه کښې موجود دي چې ورو بـچـو بـه د خـپـلـو پـلارانو برخلاف خبرونه ورکول لکه چې څنګه د سردار ډلتو زوي د خپل پلار برخلاف مخبري کړې وه. او د مستري مطب ښځې د خپل خاوند برخلاف مخبري کړې وه. هر کال به دا شـان په سلګونو واقعې کيدلے چې زامنو، رشته دارانو او ډيرو نزدې دوستانو به د مشکوک خلقو برخلاف مـخـبـرى کولے او چې هغوي به مجرمان ثابت شو نو سزا به ئې وخوړله او مخبرانو له به امير انعام ورکړو په دې طـريـقـه پـه مـلـک کـښـې يـو عام دهشت پيدا شوے وۀ او هر يوسړے به د بل نه ويريدلو. ليکن امير د خپـلـې سـلامتي دپاره مجبور وۀ. چې هغۀ د خپل قوم د سازشونو او د پرو جنبو برخلاف خپل ځان محفوظ کـړے وے ځکه چې د دې نه وړومبے د افغانستان اکثر بادشاهان او سرداران د خپلو خلقو د لاسه قتل شوي وو او هميش دې خلقو به د امير عبدالرحمٰن اندروني او بيروني دشمنانو سره سازشونه کول.

مير منشي سلطان محمد خان په خپل فټ نوټ کښې يو مثال د دې خبرې د ثابتولو دپاره ورکړے دے چې پـه ټـول افغانستان کښې د مخبرانو ساتل نهايت ضروري دي. په 1891ء کښې هر کله چې ټول فـوځ د کـابـل نـه د هزارو برخلاف د جنګ کولو دپاره ووتو نو دغه وخت د ډيرو ښو ښو عهدو خلق په يو سـازش کـښـې شـامل شول او قريباً يو سل سړي هغوي سره شامل شول دې باغيانو يوه شپه دا تجويز وکړو چې جيلخانې ته اور ورته کوۀ چونکې جيلخانه د کابل ښار په منځکښې وه نو هغوي دا خيال وکړو چې څۀ وخت د ښـار پـولـيـس د اور پـه وژلـو کـښـې مصروف شي نو د امير محافظه دسته به ډيره کمه شي او بيا به مـونـږه تـه لار صفا شي او مونږ به لاړ شو او امير به قتل کړو. نو هر کله چې امير قتل شي نو بيا د يو بغاوت کول اسان کار دے. ښار به مونږه لوټ او تالا کړو او ټول ملک کښې به فساد پيدا کړو. د امير مخبران د جيلخانو په چکو کښې موجود وو هغوي د دې سازش نه امير يو څو ګينټې وړومبے خبر کړو سازشيان ټول ګرفتار شول او هغه خط و کتابت هم د جيلخانې په چکو کښې قيديانو سره ونيوې شو.

د تـر ډيـره حـده پـورې امـيـر عـبـدالـرحـمٰن په دې مجبور وۀ چې هغه دا محکمهٔ وساتي او د مخبرانو دومـره لـوے تـعـداد پـه مـلـک کـښـې خـور کـړي. دې کـښې شـک نشته چې بعضې مخبرانو د دې محکمې د وجـود نـه نـاجـائـزه فـائـده وچـته کـړې وه او د ځنې لويو خلقو د دشمنانو نه ئې رشوتونه خوړلي وو او د دروغو رپـورټـونـه ئې د هـغـوي بـرخـلاف د هـغـوي نـه د بدل اخستو دپاره کړې وو ليکن څۀ وخت چې د دې قسم رپـورټـونـه غـلـط ثابت شول نو مخبرانو له به سخته سزا ورکړې شوه. يو ملا چې کشمش نوم ئې وۀ يو ځل د امـيـر د خـپـل زوي بـرخـلاف ئې د دروغـو رپـورټ وکړو چونکې هغه الزام دروغژن ثابت شو په دې وجه هغه مخبر ئې په توپه کښې والوځولو.)

هر کله چې ما د ایوب د مجوزه نقل و حرکت خبر واوریدو نو ما په ټول سرحد باندې څوکۍ مقرر کړې کۀ چرې هغه زما په مملکت کښې د سرحد نه رادننه شي نو چې هغه گرفتار کړي. هر کله چې هغه د غوریان په مقام زما سرحد ته راورسیدو هغۀ ولیدل چې زما څوکیداران د خوش آمدید وئیلو دپاره تیار ناست دي. له دې کبله په ځاے د دې چې د کابل تاج د ځان دپاره وګټي په هغۀ باندې د خپل ژوند د بچ کولو سخت وخت راغے هغه د خراسان ریګستان ته وتښتیدو او هلته پټ شو. او بیا په ډیر تکلیف سره د هغې خلقو د قابو نه خلاص شو چې چا هغۀ ته د تاج د پیش کولو انتظار کولو. لکه چې یو شاعر وائي "هر څوک چې خپل سر غرۀ سره جنګوي نو هغۀ غرۀ ته نقصان نۀ رسوي بلکې خپل سر ماتوي." د یو ډیر سخت کشمکش نه پس او په ډیره مشکله ایوب خپل ځان جنرل میکلین ته چې په مشهد کښې د وائسراے ایجنټ وۀ په طور د شاهي قیدي حواله کړو د څۀ خط و کتابت نه پس لارډ ډفرن وائسراے د هوښیارتیا دا قدم وچت کړو چې ایوب ئې د ایران نه هندوستان ته راوستو او هغه لا تراوسه هلته وسیږي او زما د بهادرو سپاهیانوپه لاس کښې د کښیوتو نه محفوظ دے.

زۀ اوس دریمې او ډیرې اهمې خانه جنګۍ له راځم چې په 1888ء کښې وشوه د کومو اسبابو په وجه چې دا بغاوت وشو او د هغې نه چې کومې نتیجې راووتې هغه ما د خپل کتاب د لوستونکو د علم دپاره مخکښې بیان کړي دي ما په یو بل مقام د دې نه وړومبے ذکر کړے دے چې زۀ لا د روس نه افغانستان ته تلے نۀ وم چې ما په یوه بله لار خپل درې د ترۀ زامن سردار قدوس خان سردار سرور خان او سردار اسحاق خان په بله لار میمنې ته استولي وو. په یو وړومبي باب کښې د هغوي د سفر پوره تفصیلات ما ورکړي دي لیکن د اسحاق خان د تعارف کولو دپاره دا ضروري ده چې زۀ د هغۀ تفصیلي قصه بیان کړم ځکه چې هغه د بغاوت سرغنه وۀ. او زما غدار او بیوفا تربور وۀ. هغه زما د ترۀ امیر عظیم حرامي زوے وۀ او د هغۀ مور یو حرامونے عیسائي جینۍ وه چې هغه اګر کۀ د حرم په ښځو کښې یوه ښځه وه ولې زما د ترۀ په بیبیانو کښې شامله نۀ وه. زما د دې کتاب لوستونکو ته د اسحاق د پلار د خوئ خصلت پته د هغې بیان نه چې کوم ما د هغۀ متعلق په وړومبو بابونو کښې کړے دے لګیدلے شي. هغوي ته به هغه خدمات هم یاد وي چې ما هغه څرنګه د کابل په تخت د خپل پلار د مرګ نه پس کښینولے وۀ. زما پلار بادشاه وۀ او پکار وو چې د هغۀ د مرګ نه پس زۀ بادشاه شوے وے لیکن ما تخت ترۀ ته پیش کړو کوم خدمات چې ما د هغۀ تر مرګه پورې کړي وو او کوم د مهرباني سلوک چې ما د هغۀ زوي اسحاق او د هغۀ نورو زامنو سره کړے وۀ او څرنګ چې ما د هغوي حفاظت کړے وۀ د هغې دوباره لیکل غیر ضروري دي ځکه چې د هغې وړومبے ذکر شوے دے. هغوي زما دا ټولې مهرباني هیرې کړې چې د هغې نه زما لوستونکي د اسحاق د ناشکرۍ پوره اندازه لګولے شي. دا هم یاد ساتل پکار دي چې زمونږ

په خاندان کښې د ټول وراني باعث امیر عظیم وۀ چې هغۀ زما پلار او شیر علي په خپلو کښې دشـمـنـان کړل. د ورانکارۍ هم دغه جذبه د عظیم د زوي د اسحاق په طبیعت کښې هم پرته وه او دا ضـرور وه چې نن سبا کښې به هغه دا خپل خوئ ښکاره کولو. هر کله چې زۀ روس نه راروان شوم نـو مـا د خپـلـو سرو نه حلف وفاداري واخستو او اوس هم ما سره په کابل کښې هغه قرآن شریف موجود پروت دے چې په کوم باندې دۀ (محمد اسحاق) هم دستخط او مهر لـګـولـے وۀ او پـه هـغې کښې هغۀ ماته د وفادارۍ د اخلاص او د اطاعت د منلو حلف خوړلے وۀ.(۱)

مـا هـغـه د خپـل حکومت په وړومبي کال کښې د ترکستان وائسراے او ګورنر مقرر کـړو او د هـغـۀ پـه حـلف وفـادارۍ بـاندې مې پوره پوره اعتماد وکړو کوم فوځي افسران او ګـورنـران چې بـه مـا د کابل نه ترکستان ته استول نو ما به هغوي ته سخت هدایت کولو چې تـاسـو هر وخت محمد اسحاق ته زما د ورور او د زوي په شان ګورئ کوم هفته وار اطلاعات بـه چې هغۀ ماله کابل ته راستول او هغه اوس زما په دفتر کښې موجرد دي هغه د هغۀ د فرمان بـردارۍ او د وفادارۍ د اقرارونو نه ډک دي. هغۀ به ماته دا شان خطاب کولو لکه چې یو ډیر مـخـلـص زوے یـا فـرمانبردار نوکر خپل پلار او مالک ته خطاب کوي. هغۀ به په خپلو چیټو بـاندې په دې الفاظو دستخط کولو" ستا غلام او خاکسار نوکر محمد اسحاق" په دې وجه به ما هغۀ ته دا شان خطاب کولو " زما د میني زویه او وروره" چونکې ما ته د هغۀ د بیوفایی متعلق هیـڅ قسـم خیـال پـه زړۀ کښـې نۀ وۀ په دې وجه ما بهترین رائفلونه او وسله چې په ترکستان کښې بیامونديې شوه د هغۀ په حواله کړې وه ځکه چې هغه د روس په سرحد پروت وۀ او ما دا خیـال کـولو چې دا به ښه وي چې د هرقسم ذخیرې مونږ هلته جمع کړو یعنې د سامان جنګ او د خوراک څښناک سامان واښۀ او د فوري ضرورت دپاره د هرقسم سامان. او اوس هم زۀ هـغـه شـان کار کوم. ماته هغه وخت دا پته نۀ وه چې زما خپلې وسلې او روپۍ به زما برخلاف

---

(۱) افسوس دے چې په افغانستان او هغه ټولو ممالکو کښې چې کوم ځاے پښتانۀ اباد دي په قرآن شریف بـانـدې پـخـې عهـدنامې، اقرارونه او لوظونه د دې غرض دپاره ولیکلے شي چې په هغې به عمل کیږي ولې همیش دپاره فریقین د هغې عهدنامو او د اقرارونو د ماتولو دپاره په انتظار کښې ناست وي. ورور په ورور خان په خان او سردار په سردار هره ورځ په قرآن شریف باندې یو بل سره اقرارونه او لوظونه وکړي لیکن څـۀ وخـت چې هغوي په بل باندې قابو بیامومي نو هغه لوظ او اقرار مات کړي او دغه شان د قرآن شریف د ټـولـو احـکـامـو خـلاف ورزي وکـړي دغـه وجـه ده چې د پښتون د خلې اعتبار پاتې نشو. او په دې سبب زمونږه قوم یو دروغژن او بددیانته قوم ګڼلے شي.

استعمالیږي. او کومې بهترینې دنباله پُر توپې او رائفلونه چې ما د هغهٔ په حواله کړي وو د هغې په ګولو باندې به زما سیټه ویشتے شي. هغه هم دومره دروغژن وهٔ لکه چې د هغهٔ پلار. د کومې ورځې نه چې ما هغه په ترکستان کښې پرینبے وهٔ نو هغهٔ به ماته لیکل چې کوم فوځ تا دومره پـه ډیـر تعداد کښې دلته مقیم کړے دے د هغې اخراجات دومره ډیر دي چې د ملک آمدني د هغوي د تنخواه دپاره کافي کیدے نشي. په دې وجه به ما اکثر د نورو صوبو د آمدنی نه روپۍ استولے د دې دپاره چې زما سپاهیانو له تنخواه باقاعده ورکیدے شي. ولې په دې تـولـه عـرصه کښې اسحاق په دې کښې مصروف وهٔ چې زر او توپې راجمع کړي او زما بـرخـلاف خـفیـه سازشونـه او د تـوپـو په جمع کولو او د خفیه تیارو په کولو کښې د جنګ مکمل تیارے وکړي. هغهٔ د ترکستان خلقو ته ځان یو لوے بزرګ او نیک پارسا سړے کړے وهٔ. هغهٔ به په جومات کښې د مانځهٔ دپاره هر سحر ډیر وختي پاځیدلو او په دې طریقه بـه هـغـهٔ د مسلـمـانانو یوې طبقې یعنې ملیانو له دوکه ورکوله چې ځوک لوے لوے مونځونه کـوي اوروژې نیسـي لیکن د هغوي د عمل هیڅ پروا نهٔ کوي. دې جاهلانو ملیانو ته د عبدالله انصار ولي الله دا قول یاد نهٔ وهٔ چې د هغې مضمون دا دے "ډیرې روژې ساتل د خپل خوراک بـچ کول دي او ډیر مونځونه کول د سستو کونډو کار دے چې ځان د کار نه خلاصوي ولې د نـورو امـداد کـول د لـویـو خـلـقو اصلي عبادت دے." هم دغه ولي الله وائي چې په هوا کښې الوتل هیڅ معجزه نهٔ ده ځکه چې د ګنده نه ګنده مچان هم دا کار کولے شي. د سیندونو نه بې پُـلـه او بې کشتۍ پورې وتل هم څهٔ معجزه نهٔ ده ځکه چې یو کوټه سپے یا یو اوچ وابنهٔ هم د هغې نـه پـورې وتے شي لیکن د بزرګانو خلقو لوے کرامت دا دے چې هغوي د خوږو زړونو امداد وکړي او هغوي ځان ته راواړوي.

بـلـه دوکـه مـحـمـد اسـحـاق دې ناتعلیم یافته مسلمانانو له ورکړې وه هغه دا وه چې علاوه د دې نه چې هغهٔ خپل ځان هغوي ته یو لوے مذهبي پیشوا او ملا جوړ کړے وهٔ هغهٔ خپل ځـان د نقشبندي درویشانو په سلسله کښې مرید کړے وهٔ. دا مشهوره د صوفي درویشانو ډله چې د نـقشبـنـد پـه نوم باندې بللے شوه د تیمور لنګ په زمانه کښې د بخارا یو ولي الله خواجه بهاء الدین جوړه کړې وه.

دې کښې شک نشتـه چې د دې فـرقې د باني عقائد ډیر مدلل او پاک وو لیکن په دې فـرقـه کـښـې ډیـر لوے بهانې ګر او دروغژن شته چې د هغوي د ډیرو مریدانو د نیولو لویه وجـه دا ده چې هـغـوي نـه روپۍ وشوکوي او پخپله د سستۍ ژوند تیروي. هغوي نه دا خبره هیره ده چې دا قسـم سستي د رسول الله ﷺ د هغهٔ د عقیدې او سنت نه بالکل خلاف خبره ده. ځکـه چـې هـغـوي ﷺ بـه پـخـپله ډیر سخت کار کولو. او دا سستي د دې فرقې د باني نـقشبند د عمل نه هم خلاف ده ځکه چې هغهٔ به د کولالۍ کار کولو او ټول وخت به د خدائے

د عبادت په تصور کښې پروت وۀ. د هغۀ د عملي اصولو خلاصه د فارسی په دې شعرونو کښې پرته ده " خپل لاسونه په کار کښې مصروف ساته او زړۀ د خپل معشوق (یعني خدامے پاک) په محبت کښې لګوه، په ظاهره خو په دنیاوي معاملاتو کښې لګیا اوسه ولې په باطنه د خپل روح په ترقی کښې او د روحاني دنیا په کارونو کښې مستغرق اوسه."

چونکې ترکمان خاص طور سره د دې فرقې دلداده دي له دې کبله اسحاق خان هم په هغې کښې شامل شو. د دې دپاره چې زۀ په هغې ټولو ترکمانانو کښې هردلعزیز شم کوم چې زما په ګورنرۍ کښې وسیږي. د مزار شریف دروغژن پیرانو اسحاق ته ووئیل چې په مونږ باندې الهام راځي او خواجه نقشبند د کابل تخت تاله درکړے دے د اسحاق په دې خبره باور وشو او خپل ځان ئ د ټولو خلقو په مخکښې امیر افغانستان کړو.

مونږ له د دې خبرې د ذکر کولو دپاره لږ وروستو بیا تلل پکار دي چې د دې بغاوت نه درې کاله وړومبے ماته اطلاع راغلے وه چې اسحاق د هغې رقم نه زیاتي مالیه ټوله کړې ده د کوم چې ماله هغۀ حساب راکړے وۀ. او دا هم ماته وئیلي شوي وو چې د دې صوبې د آمدنی نه هغۀ سره د خپلو ټولو ضرورياتو دپاره د کافي نه زیاتې روپی موجودې دي. د دې دپاره هغه د نورو روپو په غوښتو کښې حق بجانب نۀ دے. ما چې دا واوریدل نو ما خپل یو افسر ولیږلو چې تۀ د اسحاق د حساب کتاب پړتال وکړه او ماته یو صحیح خبر راواستوه مګر سره د دې چې ماته وئیلي شوي وو چې اسحاق تاسره درغلي کوي خو زما د هغۀ برخلاف په خبرو اعتبار نۀ راتلو. په ډیرو موقعو هم دغه شان رپورټونه ماله راکړې شوي وو مګر ما نۀ صرف دا چې هغه شاته وغورځول بلکې خلقو ته مې په سختۍ سره منع وکړه چې د اسحاق برخلاف خبرې ماته مۀ کوی.

مخې کال له ما هغۀ ته ولیکل چې تۀ ما وګوره او خپل حساب کتاب راولیږه ولې هغۀ د راتلو نه په دې بهانه معافي وغوښته چې زۀ بیمار یم او حساب کتاب ئ د خپل یو نائب په لاس راولیږلو. په دې ورځو کښې زۀ خبر شوم چې د دې سرې منصوبې نورې د برداشت کولو نۀ دي. هغۀ د ډیرو خلقو نه په قرآن شریف باندې د وفادارۍ حلفونه هم اخستي وو او چا چې د دې قسمونو نه انکار کړے وۀ نو هغوي ته هغۀ سزا ورکړې وه او یا ئ پټ په پټه قتل کړي وو.

هر کله چې ما واوریدل چې اسحاق ناجوړه دے نو ما د خپل دربار په حکیمانو کښې عبدالشکور نومے یو حکیم د هغۀ د علاج دپاره واستولو چونکې دې عقلمند حکیم ته دا پته وه چې زما چیتی به د اسحاق سرې په لاره ونیسي په دې سبب هغۀ ماته ولیکل چې د سردار اسحاق ناروغتیا زیات تر دماغي ده او په دې طریقه هغۀ په یو لطیف رنګ کښې ماته اشاره وکړه چې ا. . حاق بالکل ناروغه نۀ دے ماسوا: ۱ دې نه چې د هغۀ تاسره حسد دے. سره د

دې او سره د نورو مسلسل رپورټونو چې کوم ماته د مختلفو ذرائعو نه راغلي وو ما ته د هغوي په صداقت کښې بدستور شک وۀ لیکن هم دغه وخت په ما باندې د ګاؤټ یوه ورده او سخته حمله وشوه چې تر څو میاشتو پورې هم دغه شان جاري وه. 1888ء د جون په میاشت کښې زۀ د لمکان په غرونو کښې چې د کابل نه اتلس میله لرې دي کوم ځائے ته به چې زۀ د ګرمی تیرولو دپاره تلم سخت ناجوړه شوم. دا حمله د اګست تر میاشتې پورې جاري وه بغیر زما د خپلو حکیمانو نه او زما د ذاتي نوکرانو نه بل هیچا ته هم ماسره د کتو اجازت نۀ وۀ. چونکې د هغې خلقو به همیش رسائي کیدے شوه چې چا به ما سره په څۀ کار باندې لیدل غوښتل اګر کۀ زۀ به بیمار وم. په دې وجه اوس چونکې هیچا ته هم ماته د راتلو اجازت نۀ وۀ په دې سبب دا افواه ګډه شوه چې عبدالرحمٰن مړ شو لیکن دا خبر د خلقو نه مخفي ساتلے شوے دے. (۱)

هر کله چې بیوفا اسحاق ته زما د مرګ خبر ورسیدو نو هغۀ زما د جانشیني او د نوي امیر کیدو دعوې وکړه او زما د رعیت ډیرو وفادارو خلقو ته ئې په دې وئیلو دوکه ورکړه چې چونکې امیر عبدالرحمٰن ما سره همیش د ورور او د زوي په شان سلوک کړے دے نو د تخت حقدار د ټولو نه زیاتي زۀ یم او دا ئې هم ورته ووئیل چې زما اراده ده چې زۀ فوراً په کابل باندې پیشقدمي وکړم د دې دپاره چې انګریزان په ملک باندې قبضه ونۀ کړي او دا هغوي ډیره په اسانتیا باندې کولے شي. هر کله چې هغوي ملک بې حاکمه ووینې. اسحاق فوراً خپل کار شروع کړو او خپلې روپۍ ئې جوړې کړې او په هغې باندې دا ضرب ولګولو "لا اله الا الله امیر محمد اسحاق خان".

هر کله چې ما دا خبر واوریدو نو ما جنرل غلام حیدر خان ورکزے نائب کمانډنټ انچیف او جنرل وکیل خان ته (چې بیا ما وروستو د پلید محمد اسحاق برخلاف په جنګ کښې د بزدلۍ د ښودلو او تبنیدلو په وجه موقوف کړو) کمانډنټ عبدالحکیم خان ته (چې د نامتو جرنیل ابو احمد زوے وۀ او د جنرل عمر احمد خان چې د امیر د فوځي سکول استاذ وۀ او د هغۀ ذاتي مشیر وۀ ورارۀ وۀ او د جنرل شهاب الدین خان چې د افغاني توپخانې استاذ

---

(۱) دا فټ نوټ د میر منشي سلطان محمد خان د لاس دے: " مس هملیټن ایم ډي لیکلي دي چې زۀ به د امیر عبدالرحمٰن د دې بیمارۍ په دوران کښې د هغۀ د ملاحظې او د علاج دپاره تلم نو ما به لیدل چې هغۀ به خشت سازو ته په خپلو کمرو کښې د روسي انګیټو د جوړولو چل ښودلو. او اکثر به ئې مساله او خښتې په خپل لاس په ځائے ځائے کښېښودې. او ډیرو یورپینو چې چا امیر په خپلو سترګو لیدلے وۀ چې په امیر عبدالرحمٰن کښې د کار کولو یو لوے طاقت موجود وۀ او کۀ به ډیر سخت ناجوړه وۀ خو بیکاره به هغه نشو کښېناستے.

اول وهٔ او اوس د کابل د هاتیانو د توپخانې انچارج دے نمسے وهٔ) او بریګیډیر فیض محمد خان ته (چې اوس زما د باډي ګارډ انچارج دے) کرنیل حاجي ګل خان، کرنیل عبدالحیٔ خان او نورو کسانو ته مې حکم وکړو چې تاسو ټول د رسالې څلورو رجمټو سره او دیارلس د پیادؤ پلټنو سره او شپږ ویشت توپو سره د اسحاق برخلاف د بامیان په لاره پیشقدمي وکړئ.

د بل طرف نه سردار عبدالله خان توخي چې هغه وخت د قطغن او بدخشان ګورنر وهٔ (او اوس زما ذاتي مصاحب دے) د نمرخاتهٔ د طرف نه بلخ ته روان شو. په اوولسم ستمبر د جنرل غلام حیدر خان فوځونه ایبک ته ورسیدل چې د بلخ نه د دوؤ ورځو په مزل دے او د سردار عبدالله خان فوځونه په درویشتم تاریخ هم د دې میاشتې د هغهٔ فوځونو سره یو ځائے شول. په نهۀ ویشتم ستمبر د غزني ګک په دره کښې چې د تاشقرغان د ښار نه درې میله سهیل ته پرته ده جنګ شروع شو. دا جنګ ډیر سخت او ورد وهٔ ځکه چې د اسحاق فوځونه چې په شمار کښې د شلو زرو نه تر څلیریشت زرو پورې سپاهیان وو او هغهٔ پخپله او د هغهٔ زوي سردار اسماعیل هم انتهائي کوشش کولو چې دا جنګ وګټو ځکه چې هغوي ته دا معلومه وه چې په دې جګړه کښې به د دواړو فریقو یو طرف ته یا بل طرف ته د قسمت فیصله کیږي. دې خبرې سره زما د دې کتاب لوستونکو ته به د وړومبو بابونو د لوستو نه پس دا معلومه شوي وي چې د سردار عبدالله خان نه زیاتي وفادار او قابل اعتماد دوست زما بل نهٔ وهٔ. او نهٔ ما سره د جنرل غلام حیدر خان نه زیاتي لائق او تجربه کار افسر وهٔ . د دې دواړو افسرانو شکست داسې اسان کار نهٔ وهٔ . محمد اسحاق یو بزدل سړے وهٔ لکه څنګه چې د هغهٔ نه وړومبے د هغهٔ پلار وهٔ. هغه پخپله جنګ له نهٔ وهٔ راغلے مګر د هغهٔ فوځي افسران چې ما هغهٔ له پخپله د دې دپاره په خوښه ورکړي وو چې د ضرورت په وخت د روسیانو مقابله د هغوي په ذریعه وکړي ټول بهادر او تجربه کار سړي وو. لکه د مثال په طور جنرل محمد حسین خان او کرنیل فضل الدین خان وغیره.

د سحر نه د شپې تر ناوخته پورې د دواړو فوځونو سپاهیانو سخته جګړه په استقلال سره وکړه او د دواړو طرفو نه دومره خلق قتل او زخمیان شول چې د هغوي شمار نشو کیدے. په بله ورځ کوز ماسپښین زما د فوځ یوه دسته د سردار عبدالله خان جرنیل وکیل خان او کمانډنټ محمد حسین خان او عبدالحکیم خان د اصلي فوځ نه پریکړې شوه او د اسحاق د فوځونو د لاسه چې د محمد حسین هزاره د کمان د لاندې وو سخت شکست وخوړو. د دې په مقابله کښې هرکله چې د جنرل غلام حیدر خان او د دشمن په منځکښې جنګ هم هغه شان جاري وهٔ نو زمونږ بعضې غدار فوځیان چې جنرل محمد حسین سره شامل شوي وو هغوي هغې غرهٔ ته په پویه سوارهٔ لاړل چې کوم ځائے محمد اسحاق ناست وهٔ په دې غرض

چې هغوي د هغهٔ اطاعت قبول کړي. هغهٔ دا خيال وکړو چې دا سړي زما طرف ته په دې غرض راروان دي چې ما گرفتار کړي ځکه چې زما فوځ شکست وخوړو په دې وجه هغه وتښتيدو مگر د هغهٔ فوځ تر نمرپريواتهٔ ډير ساعته پورې تر دې چې بالکل تيارهٔ شوه د جنرل غلام حيدر خان برخلاف جنگ جاري وساتلو. خو اسحاق ځومره چې د هغهٔ نه کيدے شوه هغه هومره تيز په تيښته کښې مصروف وهٔ. هر کله چې سپاهيانو ته دا پته ولگيده چې زمونږ مالک وتښتيدو نو هغوي زړهٔ بائللو او په اخر کښې ئې شکست وخوړو. خلاصه خبره دا چې په نهمهٔ ويشتم ستمبر جنرل غلام حيدر خان يوه شانداره فتح حاصله کړه.

بل خوا زما د فوځ هغه بله حصه چې چا شکست خوړلے وهٔ دا شان په بې فکرۍ وتښتيده چې هغوي هله دمه وخوړه چې کابل ته راورسيدل او ډير خو دا شان خلق وو چې کابل ته رانـزدې هم نهٔ شول او خپلې خپلې علاقې او کورونو ته لاړل. هغوي په تمام ملک کښې خبرونه خوارهٔ کړل چې جنرل غلام حيدر خان قتل شوے دے او د عبدالرحمٰن هغه ټول فوځ چې د اسحاق برخلاف وتے وهٔ هغه تس نس شول او دا ئې هم ووئيل چې د عبدالرحمٰن د حکومت خاتمه شوې ده مگر ما د شير علي خان او د خپل ترهٔ عظيم خان په شان چې هغوي د يو شکست خوړلو نه پس تښتيدلي وو د بعضې افغاني فرمانرواؤ د نمونې پيروي ونهٔ کړه ما په ډير تحمل سره يوه ورځ صبر وکړو. او بيا د خوش قسمتۍ نه د شکست خورده فوځ کابل ته د رارسيدو نه په بل سحر ما له د خپلې فتحې او د دشمن د شکست فاش خوړلو خبر راورسيدو. دې خبرې ماته دا ثابته کړه چې کامراني د خدائے په لاس کښې ده او اگر چې د دشمن فوځونو وړومبے فتح حاصله کړه او زما فوځونو شکست وخوړو مگر بيا هم چونکې دا دخدائے پاک رضا وه چې زهٔ دې د هغهٔ د مخلوق د کنډک شپون شم يعنې د افغانستان د خلقو دې فرمان روا يم نو دشمن وتښتيدو او فتح او کامراني زما لاس له راغله.

د اسحاق بعضې افسران هغه له په پويه ورغلل چې هغهٔ له د خپل فوځ د فتح خبر ورکړي ليکن هغهٔ په هغوي اعتبار ونهٔ کړو او په هغه ځائے ئې هغوي مړهٔ کړل او ورته ئې ووې چې تاسو غداران يئ او په دې طريقه ما په دغا بازۍ باندې ايسارول غواړئ د دې دپاره چې تاسو ما دشمن ته حواله کړئ.

ما د خپل بهادر جرنيل غلام حيدر خان د دې نمايان خدماتو په صله کښې هغهٔ له يو بل د الماس ستورے وليږلو او د ترکستان د کمانډنټ انچيف په عهده مې ورله ترقي ورکړه چې تر دې وخته پورې هم هغه په دغه عهده مامور دے.

د اسحاق د دې شکست نه پس ماته دا ضروري ښکاره شوه چې زهٔ ترکستان ته د يو څو وجوهاتو په بنا لاړ شم. منجمله د هغې نه دا وجوهات وو:

☆ يو دا چې ذ دې ملک په مناسبه طريقه انتظام وکړم او يو موزون نظام حکومت ورله

تـجـويـز کړم ځکه چې د دې نه وړومبې د ملک انتظام د ځو کالو نه صرف د اسحاق په لاس کښې وۀ.

☆ بـله دا چې د دا شان بيوفا او غدارانو خلقو لکه د سلطان مراد د دې ملک نه د ايستلو انتـظـام وکـړم چـې بيـا پـه ملک کښې د وراني او فساد کولو لارې بندې شي. ځکه چې دې سلطان مراد د اسحاق په امداد کښې يوه لويه حصه اخستې وه.

☆ او دا چې مـاتـه دا خبـر رارسيـدلـې وۀ چـې د دې بغاوت په پيدا کولو کښې زما د يو ګـاونـډي حـکومت لاس هم وۀ. او په دې وجه محمد اسحاق خان د دې بغاوت جرأت کړې وۀ.

☆ مـاتـه دا خبـر هـم راغـلـې وۀ چې زما د ترکستان په فوځ کښې بعضې ذمه وار افسران نـمک حـلال نۀ وو او اسحاق سره به شامل شوي وو کۀ چرې هغه پخپله دومره بزدل نۀ وې مـګـر زۀ په دې خبره خوشحاله شوم چې دا قصه زما د خپل مقامي تحقيقات نه پس غلطه ثابته شوه. زما دا اراده هم وه چې بيا زۀ هرات ته لاړ شم او د روسيانو د بلوسيدلو د بندولو دپاره په خپـل شـمـال مـغربي سرحد باندې سراسر مضبوط استحکام وکړم اګرچې د روپو د کمي په سبب مـا په دې خپله اراده پوره په کاميابۍ سره عمل ونۀ کړې شو زما طمع وه چې حکومت هـنـد بـه پـه دې سـلسـلـه کښې ماله امداد راکړي ولې چونکې هغوي دا امداد رانۀ کړو د دې دپـاره مـا د خپـلې آمدنۍ دومره حصه د استحکاماتو په تعمير باندې ولګوله څومره چې ما بچ کـولـې شـوه. مـنـجـمله د هغې نه يوه ډيره اهمه قلا هغه وه چې کومه ما په ديهه دادي کښې د مـزار شـريف پـه خـوا کښـې جـوړه کـړه. زمـا په ټول حکومت کښې دا قلا د ټولو نه لويه او مضبوطه قلا ده. دا قلا د يو داسې غونډۍ په سوکه پرته ده چې د هغې نه هغه ټوله دره ښکاري چـې په کومه کښې هغه لويه لار پرته ده چې د روس نه بلخ ته (چې د ترکستان صدرمقام دے) تلې ده.

مـا خپـل زوے حبيـب الله خـان پـه کابل کښې د خپل جانشين په طور پريښودو او زۀ پخپله د 1888ء پـه ژمـي کښـې مـزار شريف ته روان شوم او بيا کابل ته تر جولائي 1890ء پـورې واپس رانغلم. هم په دې ورځو کښې چې زۀ په ترکستان کښې وم نو زما زوړ وفادار او نـمـک حلال نوکر جنرل امير احمد خان چې په هندوستا ن کښې زما سفير وۀ مړ شو او لارډ ليـمـزډون چـې د لارډ ډفـرن نه پس د هندوستان وائسرائے مقرر شوے وۀ ماته يو خط وليکلو چـې په هغې کښې هغۀ ماته د افغانستان د اندروني معاملاتو په حقله يو څو نصيحتونه کړي وو ما په دې نصيحتونو عمل نشو کولے . او غالباً په دې وجه هغه مانه ناراض شو. په دې معامله به بيـا پـه مـنـاسب ځاے کښې بحث وشي. د قندوز سلطان مراد وتښتيدو او په روسي ترکستان کښـې اسـحـاق سره يو ځاے شو او تراوسه پورې هغه هم هلته اوسي. د بدخشان خلقو هم په

هغه ورځو کښې بغاوت وکړو چې زۀ په مزار شریف کښې وم ما هغوي له سزا ورکړه او بیا هغوي ماله نور کړاو را نۀ کړو.

په ترکستان کښې زما د قیام په دوران کښې یوه بله واقعه هم پیښه شوه. د 1888ء د دسمبر په میاشت کښې هر کله چې ما په مزار شریف کښې د خپلو فوځونو معائنه کوله نو یو سپاهي په ما د خپل ټوپک ډز وکړو زۀ د مرګ نه هسې خدائے بچ کړم. د دې اتفاقي بچ کیدلو راز ماته هم دغه شان نامعلوم دے لکه چې هغه نورو کسانو ته وۀ چې کوم موجود وو. ځکه چې په دې پوهیدل ناممکن دي. چې د ټوپک ګولۍ څرنګه د هغې کرسۍ په منځکښې چې په کومه زۀ ناست وم سورے وکړو او په ځائے د دې چې زما د جسم نه وتے وے په هغې یو غلام بچه چې زما شاته ولاړ وۀ ولګیدو. او سخت زخمي شو ما هغه کرسۍ په طور د یوې عجوبې ځان سره ایښې ده. زۀ یو جسیم سړے یم او دا کرسۍ دومره لویه وه چې زۀ پکښې راتلے شوم.او دا زما دپاره ډیره د تعجب خبره ده چې زما سینه د دې ګولۍ نه څنګه بچ شوه. زما دا ایمان دے چې کۀ چرے خدائے پاک د چا زندګي بچ کول غواړي نو هیڅوک هم هغه نۀ شي وژلے .ځکه چې د قرآن شریف په یو آیت کښې وائي ." ستا د مرګ وخت مقرر دے، نو د هغې مقرره وخت نه به ستا مرګ نۀ یوه لحظه وړومبے او نۀ یوه لحظه پس ته راشي."ممکن ده چې زما زندګي په یو بل سبب هم بچ شوے وي او زما دا یقین دے چې دا لاندینی قصه به د دې ټولې معاملې تشریح وکړي.زۀ چې هلک وم نو ما ته خبر راکړ ے شو چې یو بزرګ سړي سره یو تعویذ دے چې هغۀ په یو کاغذ لیکلے دے او هر څوک چې هغه تعویذ په ځان پورې وتړي نو هغۀ ته د ټوپک ګولۍ یا بله وسله څۀ نقصان نۀ شي رسولے.وړومبے خو زما په دې یقین نۀ راتلو چې په هغې کښې د دې قسم د ساتنې طاقت شته. د دې دپاره ما هغه د ګډې څټ پورې وتړلو چې په تعویذ ازمیښت وکړم او اګرچې ما ډیر کوشش وکړو چې زۀ هغه وولم ولې هغه په یوې ګولۍ هم زخمي نشوه. دا یو قدرتي دلیل وۀ چې زۀ په دې باور وکړم چې په دې تعویذ کښې د دې قسم د حفاظت طاقت شته. په دې سبب ما هغه په ښي لاس وتړلو او د هلک والي نه مې تر نن ورځې پورې دا تعویذ په مټ تړلے پروت دے. زما دا یقین دے چې ګولۍ به مانه تیره شوے وي خو په ما باندې د هغې څۀ اثر یا نښه ونۀ شوه.

افسوس دے چې د کومو وجوهاتو په بنا باندې دې سپاهي زما د ویشتو کوشش وکړو هغه څرګند نشو. ځکه چې جرنیل د هغۀ په خوا کښې ولاړ وۀ د توري په یو ګوزار هم هلته قتل کړو اګرچې ما په زوره هغۀ ته اواز وکړو چې دې مۀ وژنه چې نور تفتیش د هغۀ نه وکړو ځکه چې زما دا یقین وۀ چې دا سپاهي د یو مضبوط او پټ دشمن سړے وۀ. یو بله اهمه واقعه په ترکستان کښې زما د قیام په دوران کښې شوې وه هغه دا وه چې زما د دوۀ ښځو دوه

رحمن پیدا شو یو په پنځلسم ستمبر 1889ء پیدا شو چې د هغهٔ نوم مونږه د خپل رسول ﷺ د دویم یار په نوم محمد عمر کښېښودو بل په اکتوبر کښې پیدا شو او د هغهٔ نوم مو د رسول ﷺ د څلورم یار او د هغهٔ د محبوب زوم علي رضي الله عنه په نوم غلام علي کښېښودو دا هلک اوس په ترکستان کښې دے د دې دپاره چې زما د رعیت خلق زما په ځاے هغهٔ ته په طور د خپل بادشاه ګوري او خپل زړهٔ پرې تخوړوي ځکه چې زهٔ پخپله هغوي سره پاتې کیدے نشم. محمد عمر لږ شان کمزور صحت هلک دے هغه په کابل کښې وسیږي او کله کله د خپل مشر ورور حبیب الله خان په دربار کښې حاضریږي لکه چې څنګه د هغهٔ نور کشران ورونه هم په هغه قاعده او طریقه حاضریږي چې کومه زما د خپل دربار طریقه ده.(۱)

هر کله چې زهٔ په شلیریشتم جولائي کابل ته واپس راغلم نو ماته معلومه شوه چې زما د دوؤ کالو د غیر حاضري په زمانه کښې زما زوي حبیب الله خان په ملک باندې په ډیرې عقلمندۍ په قابلیت او کلي طور سره زما د خواهشاتو مطابق حکومت کړے وهٔ په دې وجه ما هغهٔ له دوه عزتونه ورکړل یو خو ذ دې په صله کښې چې هغهٔ د ټول مملکت د نظام په کار کښې نمایان خدمات کړي وو او دویم د دې په صله کښې چې هغهٔ په ډیرې بهادرۍ سره یو داسې غدر د کیدلو نه بند کړو چې کوم زما د قندهار د هزارې د پلټنې سپاهیانو کړے وهٔ. هغهٔ په دې موقع د ډیرې بهادرۍ نه کار واخستو اکې یواځې د باغیانو سپاهیانو په منځکښې په اس سور لاړو او دا ویره ئ بالکل ښکاره نهٔ کړه چې دا سپاهیان به ماته نقصان ورسوي. د زړورتیا په دې رویه باندې هغهٔ سپاهیانو ته دا ثابته کړه چې زما په تاسو باندې پوره پوره اعتماد دے کښې ما به بغیر د باډي ګارډ نه تاسو کښې د ګرځیدو دا شان جرأت نهٔ وهٔ کړے. هغهٔ هغوي سره لوظ وکړو چې زهٔ به ستاسو شکایتونو ته غوږ کیږدم او غور به پرې وکړم. او دغه شان هغهٔ دا ټول ورانے بند کړو. هغهٔ هم دا شان نور یو یا دوه وارهٔ بغاوتونه دباؤ کړل د کوم خبر هغهٔ ته د جاجي او منګل متعلق راغلے وو د هغه وخت نه ما هغهٔ له دا اختیار ورکړے دے چې زما په ځاے تهٔ عام دربار کوه. ځکه چې زما د هغهٔ په تدبر او عقل پوره اعتماد دے.

---

(۱) دا نوټ د میر منشي سلطان محمد د لاس لیکلے دے. " امیر عبدالرحمن خپلو ټولو زامنو ته حکم کړے وهٔ چې زما هر یو زوے دې د کابل د ښار دننه وسیږي. او بیا د هغه ځاے نه دې په هفته کښې یو ځل زما سلام له راځي. او د هغې نه پس دې امیر صاحب مشري زوي حبیب الله خان ته هم د دې غرض دپاره ځي. دا د امیر یو ډیر د عقل کار دے ځکه چې کشرانو شهزادګانو ته په دې طریقه د ابتدا نه دا ښودلي شي چې تاسو خپل مشري ورور ته د خپل پلار نه په دویمه درجه ګورئ. او د دربار د طریقي مطابق د هغهٔ هم سلام له ځئ او د امیر سلام له هم. شهزاده نصر الله خان چې په 1895ء کښې انګلینډ ته تلے وهٔ د هغه د حبیب الله خان سکه ورور دے. نور ټول د هغهٔ میرني ورونه دي.

ما د ځان دپاره صرف هغه فرائض مخصوص کړي دي چې کوم د بیروني معاملاتو سره تعلق لري. سره د ځنو ډیرو اهمو او درنو معاملاتو د هغهٔ د مملکت د اندروني انتظام سره تعلق لري. چونکې دا باب ما صرف د خانه جنګواو د نورو فسادونو د تفصیل د بیانولو دپاره مخصوص کړے دے د دې دپاره زهٔ دا نهٔ غواړم چې په هغه معاملاتو نور بحث وکړم. چې د چا تعلق دې معاملاتو سره نهٔ وي.

اوس به زهٔ د هزاره د جنګ واقعات بیان کړم. دا په هغه شلورو لویو خانه جنګو کښې چې زما د حکومت په دوران کښې پیښې شوې وے اخري خانه جنګي ده. او دا زما خیال دے چې زما د حکومت کوم وقار، طاقت او زور او امن او حفاظت په دې جنګ قائم شوے دے دا بل په یو جنګ هم نهٔ دے شوے.

☆ د صدو نه هزاره قوم د کابل فرمانرواؤ دپاره یو لوے مصیبت وهٔ تر دې چې لوے نادر چې چا افغانستان هندوستان او ایران مسخر کړي وو هغهٔ هم دا مفسد هزاره زیر نهٔ کړې شول.

☆ هزارۀ به همیش د افغانستان د جنوبي شمالي او مغربي صوبه جاتو مسافران تنګول. هر کله چې د هغوي د لوټمار کارروایي بند شوې نو په ټول ملک کښې بالکل امن شو او قلاري شوه.

☆ هر کله چې به یو بیروني حمله آور په افغانستان حمله وکړه نو دا هزاره به همیش د شاملیدو دپاره تیار ناست وو. ځکه چې د هغوي دا عقیده وه چې هر یو افغان کافر دے. هزاره په خپله شیعه ګان دي او نور خلق سنیان دي. د مغلو شهنشاه اعظم سلطان بابر پخپل تزک کښې د شپاړسمې صدی په ابتدا کښې لیکي چې دې زبردست قوم سره ما هم په صفا میدان کښې جنګ ونهٔ کړې شو. زهٔ به د هغهٔ خپل الفاظ په دې ځاے کښې نقل کړم، "ما د هغوي برخلاف په دې طریقه جنګ ونښلولو او چې د شپې مونږ ناساپې ورپریوتو نو د مرخ دره مو د هغوي نه واخسته او سحر چې د مانځهٔ وخت کیدلو نو په هزارۀ راپریوتو او دومره مو ووهل چې زړهٔ مو یخ کړو." د سلطان بابر د تزک نه دا هم معلومیږي چې په هغه زمانه کښې هم د هغوي په لارو باندې په مسافرو د ډاکو وهلو عادت وهٔ. او تر څو چې به مضبوط ګشتونو د لارو حفاظت نهٔ کولو تر هغې به په هغو لارو تلل د خطرو نه ډک وو.

خپلو لوستونکو ته د هزاره قبیلې متعلق د څهٔ معلوماتو د ورکولو دپاره ما له د دې خبرې ذکر کول پکار دي چې دا خلق د افغانستان په مرکز کښې وسیږي. او قبلې طرف ته د کابل، غزني او قلات غلزي نه چې واخلې نو د هرات او د بلخ تر خواوشا پورې په ټولو مضبوطو درو او د غرونو په سوکو باندې قابضان دي. علاوه د دې لویې علاقې نه چې پکښې د دوئ اصلي کورونه پراتهٔ دي او د ټول ملک په عین وسط کښې واقع ده او قدرت ډیر په

مضبوط والي سره محفوظ کړې ده. هزاره قوم په ټول ملک کښې خوارۀ دي او په هره يوه صوبه کلي او ښار کښې بيامونډي شي. په افغانستان کښې دا متل دے چې کۀ چرې د هزاره قوم خرۀ نوکران نۀ وے چې زمونږه ټول کارونه کوي نو مونږ به پخپله لکه د خرو په شان د خرو کارونه کول. هزاره يو مخلوط النسل قوم دے. چې په اصل کښې د هغې خلقو اولاد دے چې په يوه زمانه کښې مغل قوم يو فوځې نو ابادي جوړه کړې وه. ابو الفضل په شپاړسمه صدی کښې ليکي چې دا خلق مرين خان چې د چنګيز خان نمسے وۀ د فوځ پسماندګان دي. په افغانستان کښې عام خيال دا دے چې د هندوستان په مغربي حمله آورو کښې د ډيرو کسانو دا عادت وۀ چې هغوي به د هندوستان په ټوله لار باندې د خپل قام خلقو له کورونه او زمکې د دې غرض دپاره ورکولے چې هغوي د خپل فوځ د عقب حفاظت وکړي. او هم دغه وجه وه چې مغلو د افغانستان د يو سره تر بله سره قبله په نمرخاتۀ د هزاره قوم اباد کړو. لکه څرنګه چې سکندر اعظم لګيدلے وۀ او د کافرو قوم ئ د قوقند بدخشان نه چې واخلې نو د پنجاب او چترال تر سرحده پورې اباد کړے وو. دا خلق ټول شيعه ګان دي.

اوس چې ما د خپل لوستونکو سره د دې لوے محنتي او بهادر قوم او د هغوي د کورونو او د اصل نسل پيژندګلي وکړه نو زۀ به د دې جنګ د اسبابو او د هغې د نتائجو اسباب بيان کړم. اګرچې هغوي به په لاره باندې د مسافرو په امن کښې د خلل اچولو عادت لرلو ولې دا خبره في نفسه د دې خبرې د جواب دپاره کافي نۀ وه چې زۀ د هغوي برخلاف څۀ سخت قدم وچت کړم. او بله دا خبره هم وه چې د هغوي بعضې خانان زما طرفدار وو چې د هغې په وجه ماله د هغوي سره د مهرباني سلوک کول ضروري وو. ليکن په 1888ء کښې هر کله چې زۀ د ترکستان د دې لوي مصيبت په وجه خفه او غمژن وم او مزار شريف ته د ترکستان په لار روان وم د هزاره يو قبيلې چې شيخ علي ئ نوم وۀ په هغه علاقه کښې وسيدل چې د باميان د صوبې شمال مغرب ته پرته ده. زما برخلاف راپاڅيده او زما افسران ئ زما د سپاهيانو او څاروو دپاره د سامان رسد او د وښو اخستلو نه بند کړل. ماته په دې سفر کښې ډير لوے تکليف پيښ شو هر کله چې زۀ کابل ته په 1890ء کښې واپس راروان وم نو ما سردار قدوس خان په باميان کښې په طور د ګورنر پريښودو او هغۀ ته مې هدايات ورکړل چې وقتاً فوقتاً د هزاره خانان مدعو کوه چې تا سره ګوري او هغوي له وظيفې انعامونه او خلعتونه ورکوه. او نصيحت ورته وکړه چې هغوي پرامن رعايا شي.

وروميے فساد يو ځل بيا هم د هزاره شيخ علي قبيلې رادوڅاره کړو او دا په دې سبب چې مير حسين او نورو خانانو هغوي ته لمسه وکړه چې تاسو وسله راواخلئ او په قافلو باندې تاسو په ډاکو او جنګ کولو ګوتې پورې کړئ. هغوي زما د افغاني فوځ په يوه دسته هم حمله وکړه، په دې سبب ما مصمم اراده وکړه چې د هغوي برخلاف يو فوځ ولېږم. هغوي شکست

وخوړو او څهٔ قتل شو او نورو زما اطاعت قبول کړو. او څهٔ مو کابل ته قیدیان راوستل. ما قیدیانو سره د ډیرې مهربانی سلوک وکړو. او په لږه موده کښې مو خپل کور ته واپس واستول. ما متنبه کړل چې د مخکښې دپاره په امن وسیږئ او وفادار رعایا شئ.

1891ء په سپرلي کښې ځنې هزاره یو ځل بیا په مسافرو باندې خپلې ډاکې شروع کړې. په دې زما فوځې افسرانو چې په غزني کښې مقیم وو د هزاره ځنې خانانو ته خطونه ولیکل او بالخصوص د اُرزغان خانانو ته ئ ولیکل چې زمونږ دا څلور ګاونډي حکومتونه به دا زمونږ یوه لویه کمزوري وګنې چې کهٔ چرې زمونږ د خپل رعیت خلق په امن باندې وسیدل نهٔ غواړي او مونږ به بیا بدنام شو. د دې دپاره به دا مناسب وي چې تاسو زمونږ د بادشاه مشري په ځان تسلیم کړئ. او دشمنی نه باز راشئ. هزارو خو د ګزشته دریو سوؤ کالو نه په خپل ګاونډ کښې رعایا تالا کړي وو او بادشاه هم دا طاقت نهٔ لرلو چې هغوي کلي طور د امن لارې ته راواړوي هغوي هم خپل ځان دومره مضبوط ګڼلو چې د هغوي دا خیال وهٔ چې مونږ له څوک شکست نشي راکولے او پخپل طاقت باندې ډیر غاوره وو چنانچه هغوي د دې چیتهی یو جواب ولیکلو او په هغې باندې ئ قریباً د دوؤ یا دریو درځنو خانانو مهرونه ولګول. د هغې مضمون دا وه:

"کهٔ چرې تاسو پښتانهٔ د یو دنیاوي امیر په مرسته باندې غاوره یئ نو مونږه د خپل روحاني امیر یعنې د تیغ ذوالفقار په مالک باندې تاسو نه زیات غاوره یو." د هغوي مدعا دا وه چې چونکې مونږه شیعه ګان یو د دې دپاره مونږ حضرت علي رضي الله عنه ته د خدای په دویمه درجه ګورو او په دې چیتهی کښې دې خبرې ته اشاره کړې وه چې علي رضي الله عنه زما نه (عبدالرحمٰن) نه زیات زورور دے. دې کښې شک نشته چې علي رضي الله عنه زمونږ د ټولو روحاني رهبر او د رسول الله ﷺ صحابي دے او د هغهٔ د پاک ارواح امداد ډیر لوے څیز دے. ولې دا خبره هم یقیني ده چې دا قسم امداد مفسد او باغیانو خلقو ته نشي ورکیدے. په دې چیتهی کښې وراندې هغوي دا لیکلي وو "او تاسو اے پښتنو افسرانو په خپله چیتهی کښې د څلورو ګاونډي حکومتونو ذکر ولې کړے دے؟ تاسو دا ولې نهٔ دي لیکلي چې زمونږ پنځهٔ حکومتونه ګاونډیان دي د دې دپاره چې زمونږ یعنې د هزاره حکومت هم پکښې شامل شي. مونږ تاسو ته ستاسو د فائدې او د سلامتی دپاره دا نصیحت کوؤ چې زمونږنه واوړې.

ما چې دا چیتهی ولیده نو سردار عبدالقدوس خان ته مې حکم وکړو چې د بامیان نه فوځ واخله او جنرل شیر محمد خان ته د کابل نه او بریګیډیر زبردست خان ته مې د هرات نه د روانیدو حکم وکړو چې هزارو له 1891ء په سپرلي کښې سزا ورکړې. د دې درې واړو افسرانو کمان او پوره اختیار ما سردار عبدالقدوس خان له ورکړو. د هزارو په کمین ګاهونو

باندې قبضه کول د غرونو د سختوالي په وجه او د لارو د عدم موجودګی په سبب يو ډير سخت کار وۀ. ولې سردار عبدالقدوس خان په ډيرې هوښيارتيا او په بهادرۍ وجنګيدو او دشمن له د شکست ورکولو نه پس ئ د ارزغان په ښار باندې قبضه وکړه چې د هزاره قوم د ټولو نه مضبوط مرکز وۀ. د دې شکست نه پس ډيرو خانانو زما حکومت ته سر کښيښودو او سردار موصوف هغوي کابل ته زما ليدو دپاره راواستول. دوئ ټولو سره چې ځوک ماله راغلل (د هغوي تعداد قريباً سل تنه وو) ما د ډيرې مهربانۍ او خوش اخلاقی سلوک وکړو. ځکه چې ماته معلومه وه چې دا خلق د صدو نه بالکل خودمختاره وسيدلي وو ما نۀ غوښتل چې زۀ هغوي سره سختي وکړم بلکې ما کوشش وکړو چې هغوي په مهربانۍ ځان طرف ته را واړوم. ما هغوي ټولو له قيمتي خلعتونه او هر يو کس له د زرو نه تر دوۀ زرو روپو پورې نغد رقم ورکړو او دا هغوي ته د هغې فصلونو او غلو پوره پوره معاوضه ښکاريده د کومو نقصان چې هغوي ته د دې جنګ په دوران کښې رسيدلے وۀ. ما بيا هغوي له واپس خپلو کورونو ته د تلو اجازت ورکړو.

هزاره په ژمي کښې بالکل خاموش پاتې شول ليکن د 1892ء په سپرلي کښې هغوي په زيات خطرناک شکل کښې بغاوت وکړو. محمد عظيم خان هزاره چې ما ورله د سردار خطاب په دې غرض ورکړے وۀ چې زۀ هغۀ له د خپل شاهي خاندان کسانو سره مساوي درجه ورکړم او ما هغه د هزاره وائسرائے مقرر کړے وۀ. په دغا بازۍ سره باغيانو سره يو ځائے شو او واقعه دأ ده چې د دويم بغاوت اصلي محرک هم دے وۀ چونکې دا سړے هم زما د لاسه مقرر شوے يو نامتو او مشهور او معروف افسر وۀ په دې وجه هغۀ د هزاره په ټول قوم باندې ډير اثر لرلو. او دا ټول خلق د هغۀ په اواز په ډير لوے تعداد کښې زما برخلاف راپاڅيدل. دا ځل هغوي سره د وړومبي نه زيات وجوهات موجود وو.

يو بل غدار قاضي اصغر نومے يو سړے وۀ چې هزارو هغه خپل روحاني او مذهبي رهبر ګڼلو. دې هم په دې بغاوت کښې د عظيم امدادي شو. دا ځل هغوي زما د فوځونو د نقل و حرکت د بندولو دپاره د کابل او قندهار تر منځ او د ملک د نورو اطرافو دروازې بندې کړې. ما د هرات جنرل مير عطا خان ته چې دا وخت په کابل کښې موجود وۀ حکم وکړو چې هغه دې د اتو زرو يو مضبوط فوځ سره د غزني د طرف نه په هغوي پيش قدمي وکړي او محمد حسين د هزارو يو خان چې زما ذاتي حاضر باشو کښې وۀ او د مذکوره بالا محمد عظيم دشمن وۀ حکم وکړو چې هغه دې د سهيل د طرف نه په نمک حرام سردار عظيم باندې پيش قدمي وکړي. باغيانو شکست وخوړو او عظيم کابل ته سره د خپل خاندان قيدي راوستے شو او اخر هم په قيد کښې مړ شو.

هر کله چې محمد حسين هزاره د دې کاميابۍ نه پس راغے نو ما هغۀ سره دومره د

مهربانی سلوک وکړو چې ما هغهٔ له د الماسو یو ستوری او د شهزادګانو ټوپی وبخښله. واقعه دا ده چې ما هغهٔ له دومره عزت ورکړو چې د هغهٔ په قوم او په قبیله کښې مې بل چا له نهٔ وهٔ ورکړے او بیا د دې تولو د پاسه دا چې ما هغه د هزاره جاتو ګورنر مقرر کړو. چونکې سردار قدوس خان ډیر ناجوړه شوے وهٔ ما هغهٔ ته کابل ته د راتلو اجازت ورکړو چې زما خپل حکیمان د هغهٔ علاج وکړي.

دا نمک حرام محمد حسین چې ما هغه په تیر شوي جنګ کښې د خپلو خدماتو په صله کښې دومره لویې درجې ته خیژولے وهٔ او هغهٔ ته مې دومره اعزازات بخښلي وو زما برخلاف شو هغهٔ نهٔ صرف په دې اکتفا وکړه چې نوي فتح شوي هزارو له د بغاوت کولو لمسه ورکړي بلکې د دې نه علاوه هغهٔ د بیسود اوسرخ سنګ هزارو ته چې د غزني شمال مغرب ته پراتهٔ دي او همیش سرکش خلق پاتې شوے دے د بغاوت کولو لمسه وکړه. هغوي سرکاري سامان جنګ کارتوسونه او تورې لوټ کړې دا ځل د بغاوت شغلې په هغه ټول ملک کښې بلې شوې چې په کوم کوم ځاے د هزارو قبیله وسیدله. تر دې پورې چې د دې قبیلې څومره خلق چې په کابل کښې قیدیان وو او څوک چې زما په خاص حاضر باشو کښې شامل وو او په حیثیت زما د اعتباریانو نوکرانو به ما هغوي سره د مهرباني سلوک کولو، په هغوي کښې ډیر کسان وتښتیدل او باغیانو سره شامل شول. د دیهه افشار خلق او د کابل مضافاتو کښې د نورو کلو هزاره هم دشمن ته واوړیدل او لکه څنګه چې وړومبے ذکر شوے دے، چونکې هزاره په ټول ملک کښې د پښتنو ابادۍ سره ګډوډ وسیږي په دې وجه د یو عام بغاوت د کیدلو خطره ډیره زیاته شوه.

دا هم د دې ورځو خبره وه چې حکومت هند یو طرف ته په ما د دې خبرې ډیر زور اچولے وهٔ چې مونږ خپل یو مشن د لارډ رابرټ د لاندې سره د یو مضبوطه فوځ دراستول غواړو کهٔ دا مشن راغلے وے نو د افغانانو به دا خیال پیدا شوے وهٔ چې چونکې عبدالرحمٰن پخپله د باغیانو بندوبست نشي کولے په دې وجه انګریزان د پښتنو په ملک باندې قبضه کول غواړي. بل طرف ته په میمنه کښې هم د فساد برپا کیدلو خطره وه. عمرا خان د باجوړ هم د جلال اباد د فوځونو برخلاف ګواښیدلو چې دا هم زما د پریشانۍ باعث وهٔ. او حکومت هند دا نهٔ غوښتل چې هغهٔ له دې سزا ورکړې شي زهٔ مجبور وم چې په هر ممکن طریقه زهٔ دا درې عام بغاوته او د پریشانۍ خاتمه وکړم.

ما خپل کمانډنټ انچیف جنرل غلام حیدر خان ته حکم وکړو چې خپل ټول فوځ سره چې کوم تهٔ را یو ځاے کولے شے د ترکستان نه راروان شه. تجویز دا وهٔ چې دا فوځ به د شمال مغرب نه د هزارو برخلاف پیش قدمي کوي او یو بل فوځ به د هرات د طرف نه د قاضي سعید الدین د ګورنر هرات د کمان د لاندې په هغوي پیش قدمي کوي. ما سردار

عبدالله خان د قندهار نه او د تګاؤ بریګیډیر امیر محمد خان د کابل نه د دې دپاره ولیږل چې هغوي به په هزارو باندې د جنوب مشرق نه پیش قدمي وکړي په دې طریقه به په باغیانو باندې د هر طرف نه حمله کیدله.

نورو افغانانو سردارانو هم ځو ځو ځل ماته دا درخواست کړے وۀ چې مونږ د اولس د خلقو یو فوځ په خپل خرڅ باندې د هزارو برخلاف د جنګ کولو دپاره جوړو. ځکه چې هغوي هزاره د خپل ملک او د مذهب دشمنان ګڼل. ما د دې نه وړومبے هغوي له د دې خبرې اجازت نۀ وۀ ورکړے مګر اوس ما یو عام حکم وکړو چې هر چاته اجازت دے چې لاړ شي او باغیانو له د سزا په ورکولو کښې امداد وکړي. د مسلح فوځونو او د رضاکارانو چې چا خپل خدمات پیش کړي وو تعداد د دیرش زرو او د څلویښت زرو جنګي سړو په منځکښې وۀ. دا ټول خلق د هر طرف نه د خپلو خپلو سردارانو او د مشرانو د کمان د لاندې د هزارو ملک ته روان شول. لا دا رضاکاران نۀ وو رارسیدلي چې هزارو کمانډنټ انچیف سعید الدین او سردار عبدالله خان چې دواړه د ارزغان په خوا کښې د بریګیډیر محمد خان فوځونو سره یو ځاے شوي وو د دریو طرفو نه شکست ورکړے وۀ. بریګیډیر موصوف په ډیر قابلیت او زړورتیا جنګ وکړو او د باغیانو مشترکه فوځونو له د شکست ورکولو نه پس هغۀ د هزاره قوم غدار سردار محمد حسین ګرفتار کړو. تاجے خان د هزارو میر او محمد حسن هزاره چې د سنګ خورد په نوم باندې مشهور وۀ (یعنې د کاڼي په شان کلک او بهادر) سره د نورو میرانو، خانانو او توریالو هم ګرفتار شول. دا ټول قیدیان کابل ته راوستے شو او ملک د دې ټولو ورانکارو نه صفا شو. ټول خلق اوس خاموش پرامن او باقاعده رعیت دے او د هر قسم بغاوت د ویرې او پریشانۍ خاتمه وشوه. اوس به یو سړے بیا نۀ مومې چې خلق بغاوت ته ولمسوي.

هر کله چې بریګیډیر امیر محمد خان کابل ته واپس راغے نو هغه په فوځ کښې اول نمبر جرنیل مقرر شو او ما هغه د دارالسلطنت کابل او د شاهي محل او زما د خانګي امورو انچارج افسر مقرر کړو. په افغانستان کښې د یو فوځي افسر دپاره دا یوه ډیره د امتیاز عهده ده. تر دې چې دا د هغې کمانډر انچیف د عهدې نه هم لویه عهده ده چې د کابل نه لرې اوسي. مګردا بهادر جرنیل د خپلو شاندار فتوحاتو په سبب د دې عزت مستحق وۀ. کومو کومو افسرانو چې په دې جنګ کښې حصه اخستې وه هغوي ټولو له د خپلو خدماتو مطابق انعام او اکرام ورکړے شو بعضې هزارو زما نه سوال وکړو چې مونږ له بیا په خپل ملک کښې ملازمت راکړئ ولې زما په خیال کښې د دې شعر الفاظ په هغې تعلقاتو باندې ښۀ حاوي دي چې ګوم زما او د هزارو په منځکښې پیدا شوي وو.

"تر څو چې ستا خپل زوړے او زما خپله لکۍ یاده وي نو ستا او زما منځکښې د دوستۍ خیال د ناممکن قصه ده." (۱)

دلته دا وئیل مناسب دي چې د هزارو دا جنګ چې د کوم تفصیل اوس بیان شوے دے اخري خانه جنګي وه او زهٔ پوره امید کوم چې په دې ملک کښې به د نورو خانه جنګو هیڅ خطره نهٔ وي ځکه چې دا زما یقین دے چې کوم طرز عمل ما اختیار کړے دے د هغې په سبب به د ملک دننه عام امن قائم وي . افغان رعایا او خانان دومره هوښیار شوي دي چې د امن په فوائدو او د جنګ په نقصاناتو باندې پوهه شوي دي او زما قوي امید دے چې زما رعایا به د مخکښې دپاره دومره پرامن وي څومره چې پکار دي.

ما په موجوده باب کښې چې د خانه جنګو ذکر کړے دے په هغې کښې ما هغه وړې وړې جګړې نهٔ دي بیان کړے چې کومې شنوارو او نورو سرحدي ډاکوانو یا د جندول عمرا خان سره شوے وے. ځکه چې دا دومره ډیرې اهمې نهٔ وے. ولې ماله د یو دوؤ یا دریو نورو وړو جګړو ذکر ضرور کول پکار دي چې کومې زما د افسرانو او د روسیانو په منځکښې شوے وے او دا جګړې د پنجده د هغې واقعې نه علاوه وے چې د کومې ذکر شوے دے او کومه چې ډیره اهمه جګړه وه.

د 1892ء په سپرلي کښې کرنیل یانوف هغه روسي افسر چې چا کپتان مینګ هزبینډ په اګست 1891ء کښې ګرفتار کړے وهٔ شګنان طرف ته راوړاندې شو او د جولایي په میاشت کښې د سوماتاش په مقام چې د جهیل زرد یا زیر ډنډ نمرخاتهٔ سر ته پروت دے

---

(۱) دا نوټ د میر منشي سلطان محمد خان لیکلے دے . " دا قصه د امیر ډیره خوښه وه او اکثر به هغهٔ خلقو ته بیانوله. دا مذکوره بالا الفاظ د یو مار د خلې بیان شوي دي چې د یو باغوان زوے ئې چیچلے وهٔ یوه ورځ دې باغوان دغه مار راونیولو چې مړ ئې کړي لیکن مار په دوؤ خپلې سوړې له ورغے خو مار لا نیم په سوړه کښې دننه شوے وهٔ او نیم بهر وهٔ چې باغوان هغه له په بیلچې ګوزار ورکړو او د مار لکۍ ئې پریکړه. په دې مار ډیر سخت ویریدو او بیا د ورځې د سوړې نه نهٔ راووتو مګر باغوان په دې فکر کښې لګیا وهٔ چې مار به څرنګ ونسیم چې مړ ئې کړم نو یوه ورځ هغه سوړې له ورغے او مار ته ئې ووئیل اے زما خوږه اشنا زهٔ پخپله او د باغ تول ګلونه تا ډیر یادوي خامخا راوځه چې مونږ سره مجلس وکړې مونږ د خپلې غیر حاضرۍ په وجه مهٔ غمژن کوه او مهٔ خفه کوه. د باغوان د دې خوږې خبرې په جواب کښې مار دا جواب وکړو چې کوم په دې برنې شعر کښې ذکر شوے دے چې د هغې مطلب دا دے " تر کومه پورې چې ستا دا خبره یاده ده چې ستا زوے زما د چیچلو په سبب مړ شوے دے او ماته دا خبره یاده ده چې تا زما لکۍ د بیلچې په ګوزار پریکړې ده نو ستا او زما ترمنځ اشنائي ناممکنه ده.

افغاني فوځ سره چې د کپتان شمس الدين خان د کمان لاندې وو بالمقابل شول. کرنيل يانوف زما افسر کپتان شمس الدين خان ته حکم وکړو چې د دې ځايه نه ووځه او ماته ئ پريږده کپتان هغۀ ته په جواب کښې ووئيل چې زۀ د امير کابل نوکر يم اوّ په دې وجه زۀ د خپل مالک د حکم تابع يم نه چې د روسي افسر. روسي کرنيل هغۀ له په مخ د سوک ګوزار وزکړو دا د افغان افسر دپاره يوه داسې بې عزتي وه چې بې بدله هغۀ نشوه پريښودې او څۀ وخت چې کرنيل يانوف توره راوويستله نو کپتان ورته تماچه نيغه کړه او په يانوف ئ ډز وکړو. کرنيل د ګولۍ نه بچ شو او صرف د هغۀ پېټۍ ولګيده او د پېټۍ د ټختلو نه پس ئ يو سپاهي زخمي کړو چې د کرنيل خوا ته ولاړ وۀ. په دې باندې هغوی کښې جنګ ونښتو چونکې هلته ټول ټال لس يا دولس افغانان وو او د کرنيل يانوف د فوځ دسته مضبوطه وه له دې کبله د دومره لوی طاقت برخلاف جنګ کول ناممکن وو مګر بيا هم کپتان شمس الدين او د هغۀ پښتنو سپاهيانو حسب معمول ډير په بهادرۍ جنګ وکړو تر دې چې هغوي ټول په هغه ځای قتل شول.

د روسيانو د دې ناجائز او نامناسب فعل باوجود حکومت برطانيه هيڅ عملي قدم وچت نۀ کړو او چونکې زۀ پخپله د خپلې عهدنامې د شرطونو پابند وم له دې کبله ما روسيانو سره پخپله هيڅ نشو کولی. دا واقعه هم په هغه نوعيت کښې شاملول پکار دي چې څنګه د پنجده واقعه ده. د هزاروُ د بغاوت په ورځو کښې هم يو روسي افسر نيغ د افغانستان په علاقه کښې رانوتو د روسي افسر دا کار صفا عهدشکني وه ليکن څۀ وخت چې هغۀ وليدل چې يو څو افغاني افسران ماته ګوري نو هغۀ دا عذر پيش کړو چې زه په نشه کښې يم.

د ستمبر 1893ء په مياشت کښې هر کله چې روسي افسرانو دا واوريدل چې د سر مارټيمر ډيورنډ مشن کابل ته راروان دی نو هغوي د خپل فوځ يوه دسته په مرغاب چې د بدخشانّ د علاقې يو افغاني ښار دی راوړاندې کړه او د هغه ځای افغاني فوځ له ئ درکه ورکړه څۀ وخت چې ما دا خبر واوريدو نو ما فوراً سر مارټيمر ډيورنډ ته چې دا وخت هغه د پېښور او د کابل ترمنځ جلال اباد ښار ته رارسيدلی وۀ او حکومت هند ته هم اطلاع ورکړه. سرمارټيمر زما د چيټۍ بعينه ضروري جواب راکړو او ماته ئ ډير په منت سره وليکل چې تۀ خپل جرنيل سيد شاه خان چې د مرغاب په خوا کښې وۀ هدايات واستوه چې هغه د روسيانو برخلاف چې د دې ښار په زور د اخستو دپاره تيار ناست وو بالکل جنګ ونۀ کړي ليکن ماته دا معلومه وه چې کۀ چرې زۀ روسيان خپل عمل ته پريږدم نو هغوي به پرله پسې يو يو ښار زما نه اخلي او د سرحد نه به زما په فوځونو حمله کوي او هيڅوک به هم هغوي نشي ايسارولی. د خوش قسمتي نه دا ځل افغاني افسرانو هغوي ته ښۀ سبق وښودلو او هغوي ته ئ دا ثابته کړه چې هر ځل تاسو خپله خوښه نشی کولی. جرنيل سيد شاه خان د روسي توپو جواب د يوې

مضبوطې ګوله بارۍ په ذریعه ورکړو. او هر کله چې هغوي ولیدل چې زما سپاهیان د خپل مطلب نه جاروتونکي نهٔ دي او دا ځل هغوي هسې بې فائدې خبرې نهٔ کوي نو هغوي واپس شول او فتح ئې د پښتنو په لاس کښې پریښوده. دې فتح د افغاني فوځ وقار ډیر زیات کړو د هغې نه پس روسیانو په افغاني علاقه باندې بلوسیدل بند کړل او دا اخري جګړه وه.

د کال 1893ء د ډیورنډ د عهدنامې په سبب داسې ډیرې صوبې چې د انګریزي اثر لاندې راتلې هغوي د حکومت هند برخلاف سخت جنګونه وکړل لیکن د خوش قسمتۍ نه کوم خلق چې زما رعایا کښې شامل وګڼلے شول هغوي د دې عهدنامې په شرطونو عمل وکړو او زما د حکومت اطاعت ئې بغیر د تکلیف نه منظور کړو ماسوائې د وزیرو نه چې هغوي خپل حسب معمول ورانے وکړو لیکن هیڅ نقصان ئې ونهٔ رسولو. ولې یو قوم چې زما برخلاف په اصلي معنو کښې وجنګیدل هغه د کافرستان خلق وو ما دا نهٔ غوښتل چې د کافرستان ملک چې د ډیورنډ د عهدنامې مطابق د افغانستان جزو ګڼلے شوے وهٔ د جنګ په ذریعه واخلم. زما دا تجویز وهٔ چې زهٔ اوس دا خلق پهٔ مهربانۍ او په رحم سره خپل پرامن رعیت کړم. د دې غرض دپاره ما ډیر ځل د هغوي ډیرو مشرانو له کابل ته د راتلو دعوت ورکړے وهٔ او بیا مې واپس هغوي خپلو کورونو ته د روپو او انعامونو نه بار کړي لیږلي وو د دې دپاره چې هغوي واپس لاړ شي او خپلو ملکیانو سره د دې متعلق خبره وکړي. ولې هغوي دا شان وحشیان وو چې هغوي به خپلو ګاونډیانو پښتنو سره ښځې په غواګ بدلولے او دغه شان ډیرې تنازعې راوچتې شوې وے چې آیا غوا د ډیر قیمت ده او کهٔ ښځه. هغوي زما د مهربانۍ هیڅ قدر ونهٔ کړو او کومې روپۍ چې ما هغوي له ورکړې وے په هغې هغوي زما برخلاف د جنګیدلو دپاره ټوپکې واخستې.

هم دغه ورځو کښې روس دٔ پامیر په غرونو باندې د قبضې کولو نه پس د کافرستان طرف ته د څو طرفونو نه رانزدې شو او هم دغه شان راوړاندې کیدو ماته نور انتظار هسې بې فائدې ښکاره شو د کومو وجوهاتو په بنا چې ما په کافرستان باندې د ناساپي حملې کولو فیصله وکړه هغه مفصله ذیل وو :

☆ زما دا خیال وهٔ چې کهٔ روسیانو کافرستان ناساپي او خلاف توقع واخستو نو بیا به هغوي دا دعوې وکړي چې کافرستان یو ازاد ملک وهٔ او په دې وجه مونږ حق بجانب یو چې مونږ هغه ځان سره وساتلو او زما دا یقین وهٔ چې کهٔ یو ځل هغوي دا ملک لاندې کړے وے نو دا به ډیره مشکله وه چې مونږ بیا هغوي د هغې په پریښودو مجبور کړے وے.

☆ چونکې په زړه زمانه کښې ډیر افغاني ښارونه د پنج شیر، لغمان او د جلال اباد په صوبو کښې د کافرو وو نو ما دا خیال وکړو چې ممکن ده چې روسیان کافرو ته دا لمسه وکړي چې تاسو خپل زاړهٔ مقبوضات د افغان فرمانرواؤ نه واپس وغواړئ. په دې طریقه به د

افغانستان حکومت تباه شوے وۀ ځکه چې په دې بهانه به روسیانو د افغانستان په معاملاتو کښې دخل ورکړے وۀ.

☆ یو خیال زما دا هم وۀ چې دا جنګیالے قوم به په یو داسې وخت کښې چې ځۀ وخت زما حکومت یو بل ملک سره په جنګ کښې نښتے وي د افغانستان ټول شمال مغربي سرحد باندې د مشرق نه تر مغربه زما په عقب سخت د پریشانۍ باعث وي په دې وجه هم د هغوي فتح کول ماته ډیر ضروري ښکاره شو چې د جلال اباد، اسمار او د کابل نه به د افغانستان شمال او شمال مغربي چاپېرو سره تجارت او سوداګري زیاته شي او د آمدورفت لارې به پرانستې شي. د ټولو نه اخري مګر ضروري وجه د هغوي د فتح کولو دا وه چې هغوي به په خپل ګاونډ کښې ټولو پښتنو سره جنګونه کول او دواړو طرفو نه به ډیر ډیر قتلونه کیدل او د غلامۍ منحوس رواج ته به تقویت رسیدو. هغوي دا شان بهادر خلق وو چې زما دا شان خیال پیدا شو چې کۀ چرې هغوي زما د حکومت لاندې راغلل نو هغوي به زما په فوځ کښې ډیر مفید سپاهیان ثابت شي.

د مذکوره بالا وجوهاتو په بنا ما د کافرستان د فتح کولو قصد وکړو لیکن د فوځ کشۍ نه قبل ما له یو خو د فوځ د تیارۍ په مسئله غور کول وو او بل په دې خبره چې د حملې کولو دپاره به کوم وخت ډیر موزون وي. وړومبے سوال خو ډیر مشکل نۀ وۀ لیکن دویم سوال ډیر غور طلب وۀ. د څۀ قدرې غور و حوض نه پس زۀ په دې نتیجه ورسیدم چې زما فوځ له په ژمي کښې په داسې وخت حمله کول پکار دي چې څۀ وخت چې د غرونو سوکې د واؤرې او د کنګل نه ډکې وي. په ژمي کښې د دې حملې کولو دپاره ما سره حسب ذیل وجوهات وو :

☆ ماته دا پته وه چې کافر په صفا میدان جنګ کښې زما د بهادر او منظم فوځ برخلاف نۀ جنګ کول غواړي او نۀ کولے شي. بلکې هغوي به د غرونو سوکو ته وخیژي او بیا به د لویو توپو خیژول هلته ناممکن شي.

☆ ما دا خیال وکړو چې کۀ چرې زۀ په هغوي په داسې وخت حمله وکړم چې درې پرانستې وي نو هغوي به روسي علاقې ته وتښتي او بیا به روسیانو ته د دې خبرې لمسه وکړي چې تاسو زمونږ د طرف نه مداخلت وکړئ او زمونږ ملک د پښتنو نه واپس واخلئ په دې صورت کښې به بیا روسیانو په دې ملک باندې سره د هغه ټولې علاقې چې زما د ملک شمال او مغربي سرحد باندې پرته ده د مشرۍ دعوې کړې وه.

☆ دا خلق یو بهادر قوم وۀ او کۀ چرې په اوړي کښې حمله شوے وے نو جنګ به ډیر سخت شوے وۀ او په دې طریقه به دواړو طرفو ته د سرو ډیر لوے نقصان شوے وۀ په دې وجه ما دا فیصله وکړه چې زۀ په هغوي باندې په داسې وخت کښې ورپریوځم چې هغوي د ژمي په

میاشتو کښې په خپلو کورونو کښې بند وي او د ډیر جنګ کولو موقع هغوي ته نهٔ وي.

☆ د بعضې عیسائي پادریانو دا عادت وهٔ چې هغوي هر کله موقع بیامومي نو مداخلت کوي. او چونکې ما دا خیال وکړو چې هغوي به بلا ضرورته زما د کافرستان د ملک په فتح کولو شور جوړ کړي په دې وجه ما دا ضروري وګڼله چې پیشتر د دې نه چې دا خبر مشهور شي زهٔ د جنګ په ختمولو او د ملک په مسخر کولو کښې نور ډیل ونهٔ کړم. هر چا چې د انګریزي اخباراتو نکته چینی په دې باره کښې لوستي دي هغوي ته به معلومه شوې وي چې زهٔ په دې اخري قیاس کښې غلط نهٔ وم.

چنانچه ما مفصل ذیل انتظامات په کافرستان باندې د حملې کولو دپاره وکړل. د منې په ورځو کښې ما چپ چاپ د سپاهیانو یو ډیر تعداد سره د جنګي سامان، کارتوسونو او سامان رسد په څلورو مقاماتو راجمع کړو زما اصلي فوځ د مختلف فوځي افسرانو یعنې د توپخانو، د رسالو او د پلټنو لاندې وو او بیا ټول فوځ د کپتان محمد علي خان د لاندې وهٔ. تجویز دا وهٔ چې دا دسته به د پنج شیر د درې په لاره په کلټم باندې پیش قدمي کوي چې په ټول کافرستان کښې مضبوطه او مرکزي قلا وه. د فوځ دویمې دستې ته دا حکم وهٔ چې هغوي دې د اسمار او د چترال د طرف نه د جنرل غلام حیدر خان چرخي د کمان لاندې په هغوي پیش قدمي وکړي. د فوځ دریمې دستې ته دا حکم وهٔ چې د بدخشان نه دې د جنرل قتال خان د کمان لاندې پیش قدمي وکړي او د دې نه علاوه یوې ورکوټې دستې ته دا حکم وشو چې هغه دې د لغمان نه د فیض محمد چرخي ګورنر لغمان د کمان لاندې په هغوي ورشي.

دا څلور واړه دستې بالکل تیارې شوې او د فوراً روانیدو دپاره د حکم په انتظار کښې ناستې وې چونکې دا څلور واړه مقامات چې په کوم دا فوځونه جمع شوي وو د افغانستان په سرحد واقع وو او په حیثیت د فوځي چاونو هغوي ته هر وخت اهمیت حاصل وهٔ په دې وجه هیچا هم دا خیال ونهٔ کړو چې دا تیاری څهٔ غیر معمولي تیاری دي. د حملې تر وخته پورې د هیچا په دماغ کښې دا خیال پیدا نشو چې د دې اجتماع مدعا په کافرستان باندې ناساپي حمله کول دي. په دې سبب د 1895ء په ژمي کښې په یوه ورځ د فوځ دې څلورو واړو دستو ته حکم وشو چې د چارچاپیره نه د کافرستان نه راتاؤ شئ او په یو وخت په هغوي حمله وکړئ. دا حمله په کامیابی سره سر ته ورسیده او څلویښت ورځو کښې دننه ټول کافرستان مسخر شو. او بیا د 1896ء په سپرلي کښې فوځ واپس کابل ته راغې. هر کله چې عیسائي مشنریانو دا واوریدل نو هغوي په انګلستان کښې ډیر شور جوړ کړو او وې وئیل چې کافر زمونږ هم مذهب عیسایان دي اګر چې ما هغوي کښې یو عیسائي هم چرته نهٔ وهٔ لیدلے. د هغوي مذهب چې ما د هغې متعلق یو بیل کتاب لیکلے دے د زړې بت پرستی او د توهماتو

يو ه عجيبه مجموعه وه.

ما هغه کافر چې چا په بهادرۍ مقابله کړې وه او بيا قيديان شوي وو د خپل وطن نه لرې کړل او هغوي له مې پغمان نومې يو صوبه چې د کابل په خوا کښې ده او د هغې ځاے آب و هوا خوشګوار او موسم ئې د هغوي د خپل ملک په شان دے ورکړه. ما د هغوي د تعليم دپاره يو څو سکولونه پرانستل مګر چونکې هغوي ډېر بهادر قوم دے نو قريباً ټول کشر کول له د فوځي خدمت دپاره تربيت ورکيدے شي. په کافرستان کښې تر ډېر حده پورې هغه فوځي سپاهيان اباد کړے شوي دي چې کوم د ملازمت نه واپس شوي دي. دغه شان نورې جنګجو افغان قبيلې هم پکښې ابادې شوي دي او زما دا نيت دے چې د قطبي سرحد د بچاؤ دپاره په دې ټول سرحد مضبوطې قلاګانې جوړې کړم. څۀ وخت چې کافر په دې ملک کښې وسيدل نو دا سرحد کمزورے وۀ او بالکل غير محفوظ وۀ. په دې وجه هغه بالکل د روسيانو په رحم وۀ ځکه چې هغوي د پامير غرونه هم لاندې کړي وو. زما دا اراده ده چې زۀ کلم قلا (چې د کافرستان په منځکښې او د هغې علاقې په ناقابل تسخير علاقه کښې پرته ده ځکه چې د هغې محل وقوع ډېر مضبوط دے) پخپل شمالي سرحد باندې د خپل فوځ د لويې حصې دپاره فوځي چاؤنۍ کړم. په دې ځاے کښې به زۀ د جنګي سامان او د کارتوسونو وغيرو لويې ذخيرې جمع کړم. زما لوستونکو ته به دا خبره د دلچسپۍ باعث وي چې د کلم قلا په دروازه باندې يو کاڼے لګيدلے وۀ چې په هغې د ذيل الفاظ تراشلي شوي وو :

" د مغلو شهنشاه اعظم تيمور ورومبے مسلمان فاتح وۀ چې د دې ناقابل تسخير قوم ملک ئې تر دې حده پورې فتح کړے وۀ ليکن کلم ئې د هغې د مشکل محل وقوع په سبب وانۀ خستې شو."

زما کمان افسر کپتان محمد علي خان هم په هغه کاڼي باندې په دې الفاظو دا کتبه تراش کړه." په کال 1896ء کښې د امير عبدالرحمٰن غازي په عهد حکومت کښې ټول کافرستان بشمول کلم د هغۀ د لاسه فتح شۀ او د هغه ځاے باشنده ګانو د اسلام رښتونے او پاک مذهب قبول کړو او د قرآن شريف دا آيت پرې تراش وليکلو جآء الحق و ذهق الباطل.

په دې جنګ کښې هم لکه د هزارو د جنګ په شان د افغانستان مسلمان رعايا خپل خدمات په خپلې خوش رضايۍ پيش کړل. په اخر کښې دا وئيل پکار دي چې زما په عهد حکومت کښې دا اخري جنګ وۀ.

# پناه ګزین او شړونکي

یوه بله معامله هم شته چې زما په خیال کښې هغه زما په ژوند کښې هم د ډیر اهمیت خبره ده او ممکن ده چې هغه زما د مرګ نه پس بیشانه ډیره اهمه خبره ثابته شي. په دې سبب چې هغه به زما د زوي دعوئ د کابل په تاج و تخت ډیره مضبوطه کړي. ما په هر ممکن طریقه د دې خبرې کوشش کړے دے چې زۀ په خپل دربار کښې د افغانستان د ګاونډ د حکومتونو د فرمانرواؤ او حاکمانو تعداد زیات کړم او دا هم وکړم چې زۀ د خپلو مخالفینو با اثره نوکران هم د هندوستان او هم د روس نه راولم. او ځان سره ئ یو ځاے کړم په دوئ کښې اکثر کسان زما د حکم مطابق زما د زوي په ذاتي حاضر باشو کښې شامل دي. او د هغوي تعلقات هغۀ سره دومره ژور دي چې په هغوي کښې اکثر کسان د هغۀ ډیر قریبي دوستان دي. دا دوستان به د هغۀ دپاره ډیر مفید ثابت شي. نۀ صرف په دې حیثیت چې د اشد ضرورت په وخت کښې به هغوي د هغۀ تجربه کار مشیران وي بلکې د هغوي اثر به اوس او د مخکښې دپاره هم زما د خاندان دپاره د ملاترو د تعداد په زیاتولو کښې ډیر زیات شي. زۀ به دا حاکمان په څلور قسمه کښې تقسیم کړم:

☆ هغه خلق چې د افغانستان په شمال مغربي سرحد باندې حاکمان وو او چونکې د هغوي نه روسیانو خپل ملکونه اخستي وو په دې وجه هغوي زما په دربار کښې پناه اخستې وه. په دې قسم کښې امیر ثورا بیګ چې د قولاب سابق بادشاه وۀ او د هغۀ د کور خلق، شاه محمود د درواز سابق بادشاه او د هغۀ د کور خلق او د روشن تارا اسماعیل چې د بخارا د بادشاه زوے وۀ او دغه شان نور کسان شامل وو.

☆ هم د دغه ګاونډ نه بعضې میران او خانان لکه د میر یوسف علي د ټبر خلق، میر جهاندار او د میر حاکم د ټبر خلق او رشته داران چې د چا ملکونه ما د خپل عهد حکومت په ابتدائي کلونو کښې پخپل سلطنت کښې شامل کړي وو.

☆ کومو کسانو چې یا خو حکومت برطانیه سره جنګونه کړې وو یا د حکومت برطانیه په دوستۍ باندې غیر مطمئن وو او په دې وجه هغوي ماسره پناه اخستې وه لکه عمرا خان، میر مراد علي او نور سرحدي خانان.

☆ هغه کسان چې یا خو د افغانستان شړونکي وو او یا زما د خاندان د مخالفې ډلې امدادیان او ملګري وو. دا اخري قسم خلق په پنځۀ قسمه تقسیمیدے شي :

(۱) هغه کسان چې څوک د خپلې جدا ډلې خاوندان وو لکه سردار نور علي خان او شیر علي والئ قندهار او د شیر علي والئ قندهار نور زامن چې اوس هندوستان نه راغلي دي او مونږ سره دي. او سردار محمد حسن خان چې د ډاکوانو برخلاف ئ جنګونه کړي وو (

هغه هم په هندوستان کښې وهٔ ليکن اوس زما په دربار
کښې دے) او سردار ابراهيم خان د امير شير علي خان زوے چې لا هم هغه شان په هندوستان
کښې دے (هغه زما دوست او پنشنر دے) او سيد احمد خان د کونړ چې هغه هم اوس ما سره
دے او سردار محمد خان او زما د ترهٔ سردار نور زامن سردار ولي خان وغيره.

(۲) په دويم قسم خلقو کښې هغه کسان شامل دي چې د ايوب خان ملګري او پره دار
وو زما په ټولو مخالفينو کښې د ايوب خان پره دار د ټولو نه زيات تعداد کښې وو. د دې
کسانو د بيل بيل ذکر کول غير ضروري دي ولې ماسوائې د يو څو تنو نه نورو ټولو کسانو د
هغهٔ ملګرتيا پريښنودې ده او بيا په دوئ کښې دا شان ډير لږ کسان دي چې زما تنخواه خوارهٔ
نهٔ دي او د هغهٔ نه ناراض نهٔ دي.

(۳) هغه کسان چې د يعقوب خان د پرې وو په دوئ کښې هم څنې زما ملازمت اختيار
کړے دے. قريباً قريباً داسې يو اهم سړے نشته چې اوس هغهٔ سره وي. هم په دې شان د
سردار هاشم خان ملګري هم د هغهٔ نه وتښتيدل ماسوائې د يو څو نوکرانو نه چې د هغوي څهٔ
اهميت نشته.

(۴) څلورم قسم خلق هغه دے چې په هندوستان، روس يا روسي ترکستان کښې د
شړونکو په حيثيت وسيدل. ولې نهٔ خو هغوي د خپلې ډلې خاوندان وو او نهٔ هغوي د بل چا د
ډلې وو. هغوي يا خو پخپله د افغانستان نه په څهٔ وجه تښتيدلي وو او يا ما هغوي د څهٔ وران
کارى په وجه د ملک نه بدر کړي وو. په دې قسم کښې اوس دا شان ډير لږ کسان دي چې
ما د هغوي په درخواست هغوي معاف کړي نهٔ دي او هغوي له ما خپل ملک او کورونو ته د
واپس راتلو دعوت نهٔ دے ورکړے.

(۵) پنځم قسم د هغې خلقو دے چې هغوي په 1888ء کښې د نمک حرام اسحاق د
بغاوت نه پس چې د هغې ذکر وړومبے شوے دے هغهٔ سره وتښتيدل. د هغهٔ خپل وروڼه اوس
زما په ملازمت کښې دي د هغهٔ د باقي ډلې خلقو ته زما پوره پوره توجه ده. دوئ به هم خپلو
خپلو کورونو ته واپس راشي او د مخکښې دپاره به پرامن رعيت شي.

دغه شان اوس د کابل د تاج و تخت بل مدعي نشته چې زما د زوي په امن کښې خلل
واچوي. دا ظاهره خبره ده چې کهٔ يو ډير لوے جنګيالي سړي له هم يو لوے حکومت د
افغانستان برخلاف د جنګ کولو ترغيب ورکړي ولې هغهٔ سره چې فوځ او د ډلې خلق نهٔ وي
نو هغه يواځې هيڅ نشي کولے. زهٔ د سياسي چالبازانو د دې
چل په مطلب ډير ښهٔ پوهيږم چې هغوي د ګاونډ د بادشاهانو مخالفه ډله په خپل لاس کښې د
دې غرض دپاره ساتي چې د هغوي په ذريعه هغوي د دې بادشاهانو په هر کار يو ضبط وساتي
کهٔ چرې دا بادشاهان د دې سياسي چالبازانو هرې خبرې سره اتفاق نهٔ کوي ولې د کومې ونې

چې جرړې پرې کړې شي نو بیا هیڅرې د ودریدو قابله نهٔ وي او نهٔ یو مکان د بنیادونو نه بغیر ودریدے شي.

زهٔ امید کوم چې زما زامن به هم په دې طرز عمل کښې زما د نمونې او د نصیحت پیروي وکړي او هغې ټولو اهمو کسانو له به په خپل ملک کښې ځاے ورکړي چې څوک د ګاونډي ملکونو نه د هغوي په ملک کښې پناه غواړي. دا قسم خلق به همیش د هغوي په مرسته ولاړ وي او د هغوي د دشمنانو مقابله به کوي.



